# تسهيل الهداية

## پښتو شرح د هدايه

مع

المرآة الصافيه لتخريج احاديث الهداية

الأقوال الراجحة في مسائل الهداية

حل لغات الهداية

تاليف


مولانا پروفيسر شاه فيصل

فاضل امداد العلوم



فيصل كتب خانه

محله جنگي پيښور.

**نوی تصحیح شده او اضافه شده ایډیشن**

# تسهیل الهدایه

## په قندهارۍ او یوسفزۍ پښتو کې شرح

# هدایه

**جلد: ⑥**

**تالیف** :مولانا شاه فیصل فاضل وفا ق المدارس وامداد العلوم

## خصوصیات او اضافات

① په هدایه کښې ذکرشوې حدیث باندې لاندې حاشیه کښې د هغې تخریج

② داحنافو په مینځ کښې په مختلف فیها مسئله کښې د راجح قول تعین

③ د قندهارۍ او یوسفزۍ پښتو ګډون او امتزاج

④ د هدایه د مشکلو لغاتو حل

⑤دهدایه متن ته اعراب ورکول

⑥ د مضمون په لحاظ سره د هدایه متن تقسیمول

⑦ د هدایه د هرې جملې سره متصل دهغې ترجمه

⑧ د هدایه عبارتونو ته د موضوع په لحاظ سره عنوانات ورکول

⑨ شرحې ته په عربۍ ژبه کښې مناسب عنوانات ورکول

⑩ د کتاب په اول کښې د فقه په ضروری مباحثو مشتمله جامع مقدمه

**ناشر**

**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵**

# د حقوقو په باره کښې



**دکتاب نوم**: تسهیل الهدایه شرح هدایه پښتو

**تالیف**: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس وامدادالعلوم

**د ملاویدو پته**:

**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور** ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

رشیدیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۳۳۳۹۱۵۸۴۷۷

علمیه کتب خانه اکوړه خټک ۰۹۲۳۶۳۰۵۹۴

مکتبه رحمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۶۰۴۹

مکتبه عثمانیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۰۱۳۷۳۷۰۳۰

مکتبه عرفان کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۲۱۳۱۶

مکتبه یوسفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۰۸۲۸۹۳۰

مکتبه طیبه کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۲۲۶۹۵

مکتبه حرمین کانسی روډ کوئټه ۰۳۲۱۸۰۰۱۹۳۱

مکتبه علوم اسلامیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۸۰۹۱۹۵

راشد کتب خانه چمن ۰۳۰۰۳۸۹۶۳۵۳

مکتبه حقانیه چمن ۰۳۳۳۷۷۵۲۲۱۹

**صداقت کتب خانه قندهار افغانستان** ۰۷۸۷۷۴۲۳۶۱

**قدرت کتب خانه کابل افغانستان** ۰۷۹۹۶۱۹۶۰۳

**عبدالمجید کتب خانه جلال اباد** ۰۷۰۸۱۹۷۷۴۹

اسلامی کتب خانه خوست افغانستان ۰۷۹۹۳۱۰۲۴۷

مکتبه فاروقیه پیښور ۰۳۰۰۹۰۰۷۵۵۰

مکتبه رشیدیه کوئټه ۰۸۱۲۶۶۲۲۶۳

مکتبه معروفیه کانسی روډ کوئټه ۰۳۳۳۷۹۰۷۳۹۸

**د قندهارئ او یوسفزئ پښتو**

**هغه ټکی کوم چه د یو بل څخه مختلف دی مورږ د قوسینو په مینځ کښې قندهاري ټکی ته یوسفزی ټکې لیکلې دې اودغه شان د دې پر عکس البته کوم ټکی چې کثیر الاستعمال دی نو په هغې کښې مو یا صرف په قندهارئ پښتو بسوالې او اکتفاء کړې ده یا په یوسفزئ پښتو مثلا مونږ او مورږ، قسم او ډول وغیره دغه شان کوم ټکی چې مکرر راغلی دی نو په اول ځل مو په څو مقاماتو کښې د دواړو ژبو ټکی لیکلی دی او بیا مو صرف په یوه ژبه اکتفاء کړې ده په دې طریقه یو طالب علم په دې کتاب کښې د یوسفزئ او قندهارئ دواړو لغاتو پوهه حاصلولې شی کوم چې ده ته په نورو کتابونو کښې هم مدد ورکولې شی**

**د مزید تفصیل دپاره په اول جلد کښې مقدمه ضرور اوګورئ**



# کتاب الوکالة

ژباړه: ( دا) کتاب د وکالت (په بیان کې) دې.

**تشریح: المناسبة بین الشهادة والوکالة**۞دشهادت د احکامو بیانولو نه روسته د وکالت احکام ذکرکړې شوی دی.ددې دواړو په منځ کې ① مناسبت دا دې.چه په شهادت او وکالت دواړوکې هر یو د ثواب حاصلولو سبب دې.ددې مناسبتونو په وجه د کتاب الشهادات نه روسته کتاب الوکالت ذکر کړې شوی دې.② په شهادت او وکالت دواړوکې هر یود الله تعالی صفت دې.لکه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَاللّٰهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا تَعْمَلُونَ﴾ یو آیت کې ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ﴾ دې.په ړومبی آیت کې شهید د الله تعالی صفت دې.او په دوهم آیت کې وکیل د الله تعالی صفت دې.

**معنی الوکالة**۞وکالت د واؤ په ك سره او فتحه دواړو سره ونیلې کیږی.① معنی نې ده وکالت د توکیل اسم هم دې.د توکیل معنی ده.خپل عجز او په بل باندې اعتماد ښکاره کول.② دغه ډول د ،سپارلو په معنی هم راغلې دې ③اودا هم ونیلی شوی دی.چه د وکالت معنی ،، ساتنه کول،، دی.

**تعریف الوکیل**۞ وکیل د فصیل په وزن باندې د مفعول په معنی کې مستعمل دې.وکیل هغه کس ته وائی.چه هغه کار پوره کړی.کوم کار چې هغه ته سپارلې شوې دې. د فقهاؤ په اصطلاح کې وکالت دا دې.چه یوسړې په یو مخصوص او معلوم تصرف کې دوهم سړې خپل قائم مقام مقرر کړی.

**سببه**۞د وکالت سبب هم هغه دې.کوم چې د بیع د مشروعیت سبب دې.یعنی ﴿تعلق البقاء المقدور بتعاطیها﴾ د ژوند بقاء خپل منځ کې لین دین سره متعلق ده.او چونکه خپل منځ کې لین دین لپاره تصرف اکثر نورو ته سپارلې شی.په دې وجه وکالت مشروع کړې شو.

**رکنه**۞ اود وکالت رکن لفظ ،، وکلت،، (ما وکیل کړو) او ددې مترادف الفاظ دی.د وکالت شرط دادې. چې موکل د کوم کار لپاره وکیل جوړ کړې دې. موکل پخپله هم د هغې مختار دې.

**حکمه**۞او په مجازکې د وکالت حکم دادې.چه وکیل ته د هغه کار تصرف حاصلیږی.کوم کار چې موکل هغه ته سپارلې دې.

**صفته**۞د وکالت صفت دادې.چه وکالت یو جائز عقد دې.موکل او وکیل دواړوکې هر یو ته د بل د رضامندئ نه بغیر د معزول کاوه حق دې.یعنی موکل وکیل د هغه د رضامندئ نه بغیر معزول کولې شی.

**دلائله**۞ د عقد وکالت جواز د قرآن، حدیث، اجماع، او قیاس څلور واړه دلیلونه سره ثابت دې.

**ثبوته من الکتاب**۞ الله تعالی د اصحاب کهف په واقعه کې فرمائی. ﴿فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُم بِرِزْقٍ مِّنْهُ﴾ اصحاب کهف د خوب نه د پاسیدو په وخت اوونیل،،اوس اولیګئ خپلو کې یوکس په دې روپئ ور کاوه سره په دې ښار کې بیا دې اوګوری چې کوم خوراك پاك (حلال) دې.نو رادې وړی تاسو لره د هغې نه خوراك،،دې حضراتو یوکس ته روپئ ورکړله.د حلال خوراك اخستلو، او راوړلو ذمه داري نې ورته اوسپارله.او هم دا وکالت دې.قرآن پاك دا د څه نکیر نه بغیر بیان کړې دې او قاعده ده.چه قرآن پاك د تیر شوی امت سره متعلق حکم د نکیر نه بغیر بیان کړی.نو هغه حکم زموږ لپاره هم مشروع وی.نو ثابته شوه.چه وکالت زموږ لپاره هم مشروع دې.

**ثبوته من السنة**۞ او د حدیث نه د وکالت جواز په دې طریقه ثابت دې.چه رسول الله ﷺ حکیم بن حزام او عروه بارقی رضی الله عنهما د قربانئ حیوان (څاروی) اخستلو لپاره وکیل کړل.(ترمذی) او عمرو بن امیه نې د ام حبیبه بنت ابی سفیان رضی الله عنها د قبول نکاح لپاره وکیل مقرر کړو.او حضرت رافع رضی الله عنه نې د حضرت میمونه رضی الله عنها د قبول نکاح لپاره وکیل مقرر کړلو.

**ثبوته من الاجماع**۞ د اجماع نه په دې طریقه ثابت دې.چه د رسول الله ﷺ د عهد نه واخله تر ننه پورې د وکالت

په جواز باندې د امت اجماع او تعامل جاري دی.

**ثبوته من القياس**⊛ قیاس او عقلی دلیل سره په دې طریقه ثابت دې.چه ډیر خله انسان د اوږد سفر کاوه په وجه د خپل مال د ساتنه کاوه نه عاجز وی.اوکله د اخستلو خرڅولو د صلاحیت نه کیدلو په وجه د اخستلو او خرڅولو نه عاجز وی.کله د ډیرو مشاغلو په وجه د اخستلو خرڅولو نه عاجز وی.اوکله د کمزورئ او بوډاتوب په وجه عاجز وی.نو دا ټولو عوارض د وکالت د جواز تقاضا کوی.نو ددې وجوه او عوارضو په وجه وکالت مشروع کړې شو.

**په کوم عقد کښې وکالت صحیح دې ؟**

> قَالَ (كُلُّ عَقْدٍ جَازَ أَنْ يَعْقِدَهُ الْإِنْسَانُ بِنَفْسِهِ) هر هغه عقد کوم چې انسان پخپله منعقد کوی. (جَازَ أَنْ يُوَكِّلَ بِهِ غَيْرَهُ) د هغې لپاره بل کس وکیل جائز دی.

**حل اللغة:** ① **يعقد** اوتړی ،اوکړی ② **يوكل** وکیل جوړ کړی

**القاعدة**⊛ د وکیل مقررولو په سلسله کې ابو الحسین قدوری رحمه الله دا قاعده بیان کړله.چه انسان کوم عقد پخپله منعقد کولې شی.د هغه عقد لپاره بل کس وکیل مقررول هم جائز دی.

**وجه عدم ذكر عكس الصورة**⊛ علامه مرغینانی رحمه الله دا اونه وئیل.چه کوم عقد پخپله نشی منعقد کولی.د هغې لپاره وکیل مقررول جائز نه دی.ځکه بعض عقود داسې دی.چه انسان ته پخپله د هغې د منعقد کاوه اجازت نشته.خو د هغې لپاره وکیل مقررول جائز دی.لکه د یو مسلمان څوک ذمی د شراب اخستلو او خرڅولو وکیل جوړول، نو د امام صاحب رحمه الله په نیز جائز دی.خو پخپله دمسلمان لپاره د شرابو اخستل خرڅول جائز نه دی.

**الاعتراض على القاعدة**⊛ که دا اعتراض اوکړې شی.چه د مصنف رحمه الله بیان کړې شوې قاعده هم صحیح نه ده.ځکه چې د یو ذمی د شرابو اخستل خرڅول پخپله جائز دی.خو دده لپاره یو مسلمان وکیل جائز نه دی.

**جوابه**⊛ نو ددې خواب دادې.چه ذمی ته ځنګه پخپله د شرابو اخستلو خرڅولو اجازت دې.دغه ډول دده لپاره بل کس د اخستلو او خرڅولو وکیل جوړول هم جائز دی.لکه که یو ذمی بل ذمی د شرابو اخستلو او خرڅولو لپاره وکیل مقرر کړو.نو جائز دی.او پاتې شو مسلمان د شرابو اخستلو او خرڅولو د وکیل جوړولو عدم جواز، نو ددې وجه داده.چه مسلمان د شرابو د اخستلو خرڅولو و کیل جوړول ځکه ناجائز دی.چه مسلمان ته د شرابو او د شرابو د کاروبار نه د لرې اوسیدلو امر شوې دې.نو ددې امر شرعی په وجه د شرابو اخستلو خرڅولو لپاره مسلمان د وکیل مقررولو نه منع کړې شوې دې.

حاصل داچه وکیل د مسلمان مقررول هم جائز دی.خو چونکه مسلمان ته د شرابو نه د بچ کیدلو امر شوې دې.ځکه ددې عارض په وجه د شرابو اخستلو خرڅولو لپاره مسلمان وکیل مقررول جائز نه دی.نو د شرابو اخستلو او خرڅولو لپاره د مسلمان وکیل جوړولو د عدم جواز به په قاعده کلیه او ضابطه باندې اثر نه کوی. بلکه قاعده به پخپل ځائې صحیح وی.او دا ممانعت به د عارض په وجه وی.

**نظيره**⊛ لکه مثلاً یو کس داسې اووائی. چې هرڅوک چې نکاح صحیحه اوکړی.د هغه لپاره منکوحه ښځې سره وطی کول جائز دی.نو اوس به دا اعتراض نه کیږی.که دا ښځه حائضه وی.یا د احرام په حالت کې وی.نو د هغې سره وطی کول جائز نه دی.نو دا د بیان شوې قاعدې خلاف شو.ځکه چې ددې خواب به هم دا وی. چه ددې ښځې سره وطی په هرصورت جائز ده.خو دلته کې ممانعت د ښځې د اړخه د یو عارض په وجه راپیښ شوې دې.او هغه عارض د هغې حائضه کیدل او په حالت احرام کې کیدل دی.او د عارض په وجه د وطی ممانعت ته د قاعدې خلاف نه وائی.

> لِأَنَّ الْإِنْسَانَ قَدْ يَعْجِزُ عَنِ الْمُبَاشَرَةِ بِنَفْسِهِ عَلَى اعْتِبَارِ بَعْضِ الْأَحْوَالِ ځکه چې انسان کله د بعض عوارضو په وجه پخپله د یو کار کاوه نه عاجز وی. فَيَحْتَاجُ إِلَى أَنْ يُوَكِّلَ غَيْرَهُ نو هغه دې خبرې اړخ ته محتاج وی.چه بل څوک ددې کار وکیل کړی. فَيَكُونُ بِسَبِيلٍ مِنْهُ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ نو د حاجت لرې کاوه لپاره به د وکالت ګنجائش وی.



**حل اللغة:** ① **يعجز**: عاجز کیږی ② **المباشرة**: ګډون،شرکت کول ③ **دفعا**: لپاره د لرې کولو

دذکرشوې مسئلې لپاره وکیل جوړول هم جائز دی.ددې دلیل دا دې. چې انسان کله د حالاتو او عوارضو په وجه د کار کاوه نه عاجزه وی.مثلاً د اخستلو خرڅولو تجربه نه وی. یا د خپلې مرتبې او منصب په وجه اخستل خرڅول نشی کولې.یا د بوډاتوب په وجه بازار ته د تللو توان نې نه وی.بهرحال په داسې حالاتوکې چونکه د بل د وکیل جوړولو اړتیا وی.په دې وجه د اړتیا لرې کاوه لپاره د دوهم سړی د وکیل جوړولو اجازت ورکړې شوې دې.

> وَقَدْ صَحَّ {أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَكَّلَ بِالشِّرَاءِ حَكِيمَ بْنَ حِزَامٍ(١)} او دا خبره صحیح ده.چه نبی کریم ﷺ حکیم بن حزام رضی الله عنه د اخستلو وکیل کړې وو {وَبِالتَّزْوِيجِ عُمَرَ بْنَ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنهما} (٢) او عمرو بن ام سلمه رضی الله عنه نې د نکاح کاوه لپاره وکیل کړې دې.

**حل اللغة:** ① **الشراء**: اخستل ② **التزويج**: واده کول

**تشريح:** ①حدیث نه هم ددې تائید کیږی.لکه په ترمذی کې روایت دې.د حکیم بن حزام رضی الله عنه نه نقل دی.چه رسول کریم ﷺ دوی ته یو دینار ورکړو.او د قربانئ څاروی اخستلو لپاره نې اولیګلو.( یعنی وکیل نې کړو) نو حکیم یو حیوان (څاروې) د یو دینار په عوض واخستلو.او هغه نې د دوو دینارو په عوض خرڅ کړو.بیا واپس راغئ.او یو حیوان (څاروې) نې د یو دینار په عوض واخستلو.او د رسول الله ﷺ په خدمت کې نې یو دینار او حیوان (څاروې) پیش کړو.او رسول الله ﷺ دینار خو صدقه کړو.او د حکیم بن حزام رضی الله عنه په تجارت کې نې د هغه لپاره د برکت دعا اوکړله، ،②دغه ډول د عروه بارقی رضی الله عنه نه نقل دی. یعنی ، ،رسول الله ﷺ عروه بارقی ته د قربانئ حیوان (څاروې) یا د وزه اخستلو لپاره یو دینار ورکړو.موصوف دوې (دوه) وزه واخستلې.بیا د هغې نه یوه وزه د یو دینار په عوض خرڅه کړله.او محسن اعظم ﷺ په خدمت کې نې یوه وزه او یو دینار حاضر کړو.رسول الله ﷺ د عروه لپاره د هغه په بیع کې د برکت دعا اوکړله.( دا دعا داسې قبوله شوه) که عروه بناوره هم اخستله.نو په هغې کې به نفع ضرور وه.

**طريق الاستدلال**⊛ ددې دواړه روایتونو نه ثابته شوه.چه د اخستلو خرڅولو لپاره وکیل مقررول جائز دی.ددې نه علاوه رسول الله ﷺ عمر بن ام سلمه نې د نکاح کاوه وکیل کړې دې.چه عمر بن سلمه د وکیل په حیثیت سره د خپلې مور ام سلمه نکاح رسول الله ﷺ سره کړې ده.علامه التراری رحمه الله فرمائیلی دی.چه د ام سلمه سره د رسول الله ﷺ د نکاح په وخت د عمر بن ام سلمه عمر یوکال وو.یا په قول د علامه ابن جوزی رحمه الله درې کاله وو.خو علامه ابن عبدالبر وئیلی دی.چه عمر بن سلمه د شعور حد ته رسیدلې وو.د علامه التراری او علامه ابن جوزی رحمهما الله د قول په بناء باندې ددې حدیث نه استدلال مشکل دې.البته د علامه ابن عبدالبر د قول مطابق استدلال ممکن دې.

**په حقوقو کښې د وکیل بالخصومة حکم**

> قَالَ (وَتَجُوزُ الْوَكَالَةُ بِالْخُصُومَةِ فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ) فرمائی.او په ټولوحقوقو کښې وکالت بالخصومت جائز دې. لِمَا قَدَّمْنَا مِنَ الْحَاجَةِ د هغه حاجت په وجه کوم چې موږ بیان کړې دې. إِذْ لَيْسَ كُلُّ أَحَدٍ يَهْتَدِي إِلَى وُجُوهِ

---

(١) حديث حكيم بن حزام رض أخرجة أبوداؤد فى البيوع باب ٢٧ رقم٢٣٨٦ و الترمذى فى البيوع باب ٣٣٤ رقم ١٢٥٧)_

(٢) من حديث أم سلمة أخرجة النسائى فى النكاح رقم ٣٢٥٤ و أحمد فى المسند (٢٢/٦) و الحاكم فى المستدرك(١٧٨/٢) و البيهقى فى السنن الكبرى (٢١٣/٧) رقم ١٣٧٥٤)_

**الخصومات.** ځکه چې هرسړی د خصومتونو طریقو ارخ ته لاره نشي موندلی.

**حل اللغة:** ① **الخصومة:** جګړه ② **سائر:** ټول ③ **یهتدی:** معلومات لری، لار مومی ④ **وجوه:** جمع د وجه طریقه ⑤ **الخصومات:** جمع د خصومة، جګړه

**جوازالوکالة في سائرالخصومات**① ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی: چه په ټولو حقوقوکي د مقدمه دائر کاوه او د دعوې په سلسله کي وکیل جوړول جائز دی.

**دلیله**① دلیل حاجت دی. ځکه چې هرسړی په صحیح طریقه د مقدمو چلولو او د عدالت د کښسته پورته (او قسما قسم) طریقو نه خبر نه وی. نو ددې ارتیا لرې کاوه لپاره هم د مقدماتو په سلسله کي وکیل جوړول جائز دی.

**وَقَدْ صَحَّ أَنَّ عَلِيًّا رضي الله عنه وَكَّلَ عَقِيلًا،** او دا صحیح ده. چه علی رضي الله عنه په خصومتونو کي عقیل وکیل جوړکړې وو **وَبَعْدَمَا أَسَنَّ وَكَّلَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جَعْفَرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (١)** او د عقیل د بوډا کیدلو نه روسته ئې عبدالله بن جعفر رضي الله عنه وکیل جوړ کړو.

**حل اللغة:** ① **اسن:** چه عمر ئې زیات شو، سپین ږیرې (بوډا) شو

**تشریح:** او د بیهقی د تخریج مطابق دا خبره ثابته ده. چه حضرت علی رضي الله عنه په خصومات او مقدماتوکي د پیروی کاوه لپاره خپل رور عقیل بن ابی طالب وکیل مقرر کړو. ځکه چې عقیل ډیر ذکی (ذهین) او حاضر ځوابه وو. د حضرت عقیل د بوډاتوب نه روسته ئې عبدالله بن جعفر وکیل مقرر کړو. ځکه چې دا هم خواه ذکی سړی وو. نو د حضرت علی رضي الله عنه په خصوماتو کي عقیل، او د عقیل نه روسته عبدالله بن جعفر رضي الله عنه وکیل مقررول ددې خبرې دلیل دی. چه د خصوماتو وکیل جوړول جائز دی.

**وَكَذَا بِإِيفَائِهَا وَاسْتِيفَائِهَا** هم دا حکم د ټولو حقوقو ادا کاوه او حاصلولو کي دی. **إِلَّا فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ فَإِنَّ الْوَكَالَةَ لَا تَصِحُّ بِاسْتِيفَائِهَا مَعَ غَيْبَةِ الْمُوَكِّلِ عَنِ الْمَجْلِسِ** سوا د حدودو او قصاص نه. چه د حدودو او قصاص حاصلولو لپاره د مجلس نه د مؤکل په غائب والی کي وکالت جائز نه دی.

**حل اللغة:** ① **الایفاء:** دا بل حق ادا کول ② **الاستیفاء:** د بل نه خپل حق حاصلول

**تشریح:** داحنافو رحمهم الله په نیز د حقوقو ادا کاوه او وصولولو لپاره وکیل کول هم جائز دی. سوا د حدود او قصاص نه. یعنی د حدودو او قصاص وصولولو لپاره وکیل کول جائز نه دی. که د قاظی په عدالت کي مؤکل موجود نه وی. نو وکیل ته دحد یا قصاص وصولولو اختیار نه وی.

② او امام شافعی، امام مالک، او امام احمد رحمهم الله فرمائی. چه د مؤکل په غیرموجودګئ کي وکیل لپاره حدود او قصاص وصولول جائز دی. اوکه مؤکل په عدالت کي موجود وی. نو د ائمه اربعه اتفاق دی. چه وکیل حد او قصاص وصولولی شی. خود مؤکل په غیرموجودګئ کي د احنافو په نیز د حدودو او قصاص وکیل لپاره وصولول جائز نه دی. او د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نیز جائز دی. (عینی)

**لِأَنَّهَا تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ** ځکه چې حدود او قصاص د شبهاتو په وجه لرې کیږی. **وَشُبْهَةُ الْعَفْوِ ثَابِتَةٌ حَالَ غَيْبَةِ الْمُوَكِّلِ** او د مؤکل په غیر موجودګئ کي د قاتل د معاف کاوه شبه موجود ده. **بَلْ هُوَ الظَّاهِرُ لِلنَّدْبِ الشَّرْعِيِّ** بلکه شرعاً د مندوب کیدلو په وجه هم دا ښکاره ده. **بِخِلَافِ غَيْبَةِ الشَّاهِدِ** په خلاف د شاهد د غیر موجودګئ. **لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ الرُّجُوعِ** ځکه چې په ښکاره به هغه د خپلې ګواهئ نه رجوع نه کوی. **وَبِخِلَافِ حَالَةِ الْحَضْرَةِ** او په خلاف د مؤکل د موجودګئ. **لِانْتِفَاءِ هَذِهِ الشُّبْهَةِ** ځکه چې د معاف کاوه شبه منتفی ده.

(١) من أثر عبدالله بن جعفر أخرجة البیهقی فی السنن الکبری (٦/١٣٤) رقم ١١٤٣٧)۔



**حل اللغة:** ① **تندرئ:** لرې کیږی ② **العفو:** معافی ③ **الندب:** خوښ کیدل، مستحب ④ **عدم الرجوع:** نه واپس کیدل ⑤ **الحضرة:** حاضریدل

**تشریح:** زموږ د ارخه ددې دلیل دادې. چه حدود او قصاص د عقوباتو ځنې دی. اوعقوبات د شبهاتو په وجه ساقطیږی. او په عدالت کي د مؤکل نه موجودکیدلو په صورت کي قاتل د قصاص نه د برئ کاوه او معاف کاوه شبه موجود ده. یعنی دا امکان موجود دی. که مؤکل په عدالت کي موجود وی. نو هغه به پخپله قاتل د قصاص نه برئ کړې وو. او معاف کړې وو. بلکه دا امکان ښکاره او غالب دی. ځکه چې د آیت ﴿وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ او ﴿فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ﴾ په وجه قاتل او مجرم معاف کول شرعاً مستحب دی. نو هرکله چې د مؤکل د ارخه د قاتل د معاف کاوه شبه موجود ده. او د شبه په وجه عقوبات یعنی حدود او قصاص ساقطیږی. نود مؤکل په غیرموجودګئ کي ددې شبه په وجه د هغه وکیل ته د حدودو او قصاص وصولولو حق حاصل نه وی. چونکه حدود او قصاص د شبهاتو په وجه ساقطیږی. اود،، کتاب القاضی الی القاضی،،،، شهادة علی الشهادة،، او د شهادة النساء مع الرجال په ذریعه نشی وصولولی. البته که د حد یا قصاص ګواهی ور کاوه نه روسته ګواه د قاضی دمجلس نه غائب شو. نو د ګواه په غیرموجودګئ کي هم حدود او قصاص وصولولی شی. اګرچه د ګواه د خپلې ګواهئ نه د رجوع کاوه شبه موجود ده. ځکه ښکاره هم دغه ده. چه ګواه به د خپلې ګواهئ نه رجوع نه کوی. ځکه چې د ګواهئ نه رجوع کول دهغه په فسق او کذب باندې مبنی دی. اود مسلمان په حق کي فسق او کذب خلاف ظاهر دی. نود فسق او کذب الزام نه د بچ کیدلو لپاره ښکاره هم دغه ده. چه ګواه به د خپلې ګواهئ نه رجوع نه کوی. او هرکله چې د ګواه د خپلې ګواهئ نه رجوع نکول ښکاره دی. نو د هغه په غیر موجودګئ کي حدود او قصاص وصولول جائز دی. ځکه که مؤکل قاتل معاف کول غوښتل. نومعاف کړې به ئې وو. خو هرکله ئې چې معاف نکړو. حالانکه مؤکل په عدالت کي موجود دی. نود معاف کاوه شبه پاته پاتې نشوه. او هرکله چې دمعاف کاوه شبه پاته پاتې نشوه. نو قصاص به نه ساقطیږی. او هرکله چې قصاص ساقط نشو. نو وکیل دا وصولولی شی.

**وَلَيْسَ كُلُّ أَحَدٍ يُحْسِنُ الِاسْتِيفَاءَ،** اوهرسړی په قصاص اخستلو قادر هم نه وی. **فَلَوْ مُنِعَ عَنْهُ** نو که هغه د وکیل جوړولو نه منع کړې شو. **يَنْسَدُّ بَابُ الِاسْتِيفَاءِ أَصْلًا** نو د قصاص اخستلو دروازه به بالکل بنده شی.

**حل اللغة:** ① **یحسن:** ښه کولې شی ② **الاستیفاء:** د بل نه یو څیز حاصلول ③ **ینسد:** بندیږی ④ **باب:** دروازه ⑤ **اصلا:** بیخی

**تشریح:** په دې عبارت سره د سوال ځواب دی. سوال دادې. چه هرکله مؤکل د قاضی په عدالت کي موجود وی. نود قصاص وصولولو لپاره وکیل جوړول صحیح کیدل پکار نه دی. ځکه چې په دې صورت کي مؤکل پخپله قصاص وصولولی شی. د ځواب حاصل دادې. چه هر سړی په قصاص وصولولو باندې قدرت نه لری. په ښه طریقه د قصاص اخستلو صلاحیت نه لری. اوس په داسې صورت کي که د وکیل جوړولو نه منع شی. نو د قصاص وصولولو دروازه به بنده شی. ځکه چې په وکیل جوړولو سره خو تاسو منع کړو. او پخپله د قصاص وصولولو صلاحیت نه لری. نو د قصاص وصولولو دروازه بنده شوه.

**وَهَذَا الَّذِي ذَكَرْنَاهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (١)** او دا څه چې موږ ذکرکړل. د ابوحنیفه رحمه الله قول دی. **(وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا تَجُوزُ الْوَكَالَةُ بِإِثْبَاتِ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ بِإِقَامَةِ الشُّهُودِ أَيْضًا)** ابو یوسف رحمه الله فرمائی. چه په ګواه قائمولو سره د

(١) القول الراجح هوهذا قول الإمام الأعظم رحمه الله کذا فی الکفایة (٦/٥٥٠) وفتح القدیر (٦/٥٥٨) والدرالمختار (٤/٤٤٦) والهندیة (٣/٥٦٤) نقلاً عن القول الراجح (٢/١٤٧)۔

حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل جوړول هم جائز نه دی. وقول محمد مع أبي حنیفة او د امام محمد رحمه الله قول د ابوحنیفه رحمه الله سره دې. وقیل مع أبي یوسف رحمهم الله او وئیلی شوی دی چه د ابویوسف رحمه الله سره دې. وقیل هذا الاختلاف في غیبته او بعض حضرات فرمائي چه دا اختلاف د مؤکل غائبیدلو په صورت کي دې. دون حضرته هغه د حاضریدلو په صورت کي نه دې. لأن کلام الوکیل ینتقل الی الموکل عند حضوره ځکه چې د وکیل کلام د مؤکل په موجودګۍ کي مؤکل اړخ ته منتقل کیږي. فصار کأنه متکلم بنفسه داسې شوه. لکه چې مؤکل پخپله خبرې کوي.

**حل اللغة:** ① الاثبات ثابتول ② ینتقل منقل کیږي، بدلیږي

**تشریح:** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي چه دا څه صورې ذکرکړل. د ابوحنیفه رحمه الله قول دې. یعني په ټولو حقوقو کي د خصومت وکیل جوړول، او د هغې د وصولولو او ادا کاوه وکیل جوړول جائز دی. بیا ئې د حدودو او قصاص استثناء او فرمائیله اووې وئیل. که مؤکل د قاضي په مجلس کي موجود نه وي. نود حدودو او قصاص وصولولو لپاره وکیل کول جائز نه دی. ددې وضاحت نه دا معلومه شوه. چه ګواه قائمولو سره د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کول جائز دی. دا تفصیل د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې. لنډیز دا چې د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز که مؤکل په عدالت کي موجود نه وي. نو د حدودو او قصاص وصولولو لپاره وکیل جائز دی. او حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. چه لکه ځنګه د حدودو او قصاص وصولولو لپاره وکیل کول جائز نه دی. دغه ډول د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کول هم جائز نه دی.

حاصل دا چه د مؤکل په غیرموجودګۍ کي د حدودو او قصاص وصولولو لپاره وکیل کول د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله دواړو بزرګانو په نیز ناجائز دی خو ګواه پیش کاوه سره د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کاوه کي اختلاف دې. یعني د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کول جائز دی. اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز ناجائز دی. اود حضرت امام محمد رحمه الله قول مضطرب دې. بعض حضرات فرمائي چه امام محمد رحمه الله په دې مسئله کي د امام ابوحنیفه رحمه الله سره دې. او بعض فرمائي چه امام ابویوسف رحمه الله سره دې. بعض عالمان وائي. چه د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په منځ کي اختلاف په دې صورت کي دې. کله چې مؤکل په عدالت کي موجود نه وي. خوکه مؤکل په عدالت کي موجود وي. نود حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کول بالاتفاق جائز دی. ځکه چې د مؤکل په موجودګۍ کي د وکیل کلام مؤکل اړخ ته منتقل کیږي. نو داسې شوه. لکه چې مؤکل پخپله خبرې کوي. او کله چې مؤکل پخپله خبرې کونکې وي. نو په حدودو او قصاص ثابتولو کي هیڅ باك نشته.

له د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې. أن التوکیل إنابة چې وکیل کول خپل نائب مقررول وي. وشبهة النیابة یتحرز عنها في هذا الباب حالانکه د حدودو او قصاص په باب کي د غائب د شبه نه هم بچ کیدلې شي (کما في الشهادة علی الشهادة لکه په ،،شهادة علی الشهادة،، کي. وکما في الاستیفاء او لکه ځنګه چې په قصاص حاصلولو کي دی.

**حل اللغة:** ① الانابة نائب مقرر کول ② یتحرز ځان ساتلې شي

**تشریح:** په مختلف فیه مسئله کي د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې. چه د مؤکل په غیرموجودګۍ کي د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کول په حقیقت کي خپل نائب مقررول وي. او نائب مقررول یو ډول شبه ده. اودا خبره مسلم ده. چه په حدودو او قصاص کي د شبهاتو نه احتراز کولې شي. نود نیابت د شبه په وجه د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل کول جائز نه دی. لکه د شبه بدلیت په وجه ،،شهادة علی الشهادة،، په حدودو او قصاص کي نشي قبلولې. او لکه ځنګه چې د معاف کاوه د شبه په وجه د مؤکل په غیرموجودګۍ کي قصاص وصولولو لپاره وکیل کول جائز نه دی. دغه ډول د نیابت د شبه په وجه د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره به هم وکیل کول جائز نه وي.



ولأبي حنیفة رحمه الله او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. أن الخصومة شرط محض چې خصومت یو شرط محض دی. لأن الوجوب مضاف الی الجنایة ځکه چې د حدودو او قصاص واجبیدل جنایت اړخ ته منسوب کیږي. والظهور الی الشهادة او د جرم ښکاره کیدل شهادت اړخ ته منسوب دی. فیجري فیه التوکیل نو په دې کي به توکیل جاري کیږي. کما في سائر الحقوق لکه چې په نورو حقوقو کي جاري کیږي.

**حل اللغة:** ① مضاف نسبت کولې شي ② الجنایة ګناه ③ سائر ټول ④ یجري جاري کیږي

**تشریح:** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه خصومت یعني مقدمه دائر کول د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره صرف یو شرط دې. د خصومت نه بغیر د حد او قصاص ثابتیدل ممکن نه دی. او خصومت شرط محض ځکه دې. چه د حد نفس وجوب، نفس جنایت اړخ ته منسوب کیږي. او د جنایت ظهور نفس شهادت اړخ ته منسوب کیږي. او خصومت یعني مقدمه دائر کاوه اړخ ته نه د حد وجوب منسوب کیږي. اونه ظهور جنایت منسوب کیږي. نو خصومت د ثبوت حد لپاره صرف یو شرط شو. او شرط صرف په حقوقو کي یو حق دې. او وړاندې تیر شوی دی. چه په ټولو حقوقو کي وکیل کول جائز دی. نو خصومت یعني دحدودو او قصاص ثابتولو لپاره د منډې ترړې وهلو لپاره به هم وکیل کول جائز وي.

## د ..من علیه الحد والقصاص.. د اړخه د وکالت حکم

وعلی هذا الخلاف التوکیل بالجواب من جانب من علیه الحد والقصاص هم دا اختلاف د ،،من علیه الحد،، (په چا چه حد واجب دې) د اړخه د ځواب ور کاوه لپاره د وکیل جوړولو دې.

**تشریح:** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه په کوم کس باندې د حد یا قصاص دعوه ده. دهغه د اړخه ځواب ور کاوه لپاره په وکیل جوړولوکي هم د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله هم هغه اختلاف دې. یعني د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د من علیه الحد د اړخه ځواب ور کاوه لپاره وکیل جوړول جائز دی. اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز ناجائز دی. اود امام محمد رحمه الله قول مضطرب دې.

وکلام أبي حنیفة رحمه الله فیه أظهر په دې کي د امام ابوحنیفه رحمه الله کلام زیات ښکاره دې. لأن الشبهة لا تمنع الدفع ځکه چې شبه حدود دفع کول نه منع کوي.

**حل اللغة:** ① لاتمنع نه منع کوي ② الدفع لرې کول د قصاص

**تشریح:** او په دې کي د امام ابوحنیفه رحمه الله قول په نسبت د حد ثابتولو توکیل زیات ښکاره دې. یعني هرکله چې د امام صاحب رحمه الله په نیز د حدودو او قصاص ثابتولو لپاره وکیل جوړول جائز دی. نو د مؤکل نه د حدودو او قصاص دفع کاوه لپاره به وکیل جوړول په درجه اولی جائز وي. ځکه شبه بدلیت د کوم په وجه چې امام ابویوسف رحمه الله وکیل جوړول ناجائز ګرځوي. د حدودو او قصاص دفع کول نه منع کوي. یعني د شبهاتو باوجود د حدودو او قصاص دفع کیدل ثابتیږي. چه د قصاص معافي په ،،شهادة علی الشهادة،، او شهادت نساء مع الرجال سره ثابتیږي. یعني که شهود فرع د شهود اصل د اړخه دا ګواهي ورکړي. چه د مقتول اولیاؤ د قصاص معافي ورکړې ده. یا یو سړې او دوې (دوه) ښځې ګواهي ورکړي. چه د مقتول اولیاؤ قصاص معاف کړې دی. نو ددې ،،شهادة علی الشهادة،، او شهادت نساء مع الرجال په وجه د قصاص نه معافي ثابتیږي. نو هرکله چې د شهادت باوجود د حدودو او قصاص دفع کیدل ثابتیږي. نو د شبه بدلیت باوجود د ،،من علیه الحد،، د اړخه ځواب ور کاوه لپاره او د ،،من علیه الحد،، نه حد یا قصاص دفع کاوه لپاره وکیل جوړول به هم جائز وي.

غیر أن اقرار الوکیل غیر مقبول علیه خودا چې مؤکل باندې د وکیل اقرار نامقبول دې. لما فیه ځکه په دې کي ددې خبرې شبه ده. چه مؤکل به هغه ته د اقرار حکم نه وي ورکړې.

**تشریح:** البته دومره خبره ضرور ده. که وکیل د قاضي په مجلس کي خپل مؤکل باندې د موجب قصاص (

قتل) اقرار اوکړي.یعنی دا اقرار اوکړي.چه واقعی زما موکل قاتل دي.نو د وکیل دا اقرار به استحساناً نه قبلیږي.اګرچه قیاساً به قبلولې شي.د قیاس وجه داده.چه د توکیل صحیح کیدلو نه روسته وکیل د موکل قائم مقام وي.نو د وکیل اقرار به د موکل د اقرار پشان وي.او د موکل اقرار پخپله هغه باندې صحیح دې.ځکه به د وکیل اقرار پخپل موکل باندې صحیح وي.د استحسان وجه داده.چه د وکیل اقرار د موکل د اقرار قائم مقام وي.او قصاص د داسې ارخه نه وصولیږي.کوم چې د بل قائم مقام وي.دویمه وجه داده.چه په دې کې دا شبه ده.چه موکل وکیل ته د اقرار حکم نه وی ورکړې.او د موکل د حکم نه بغیر وکیل ته د اقرار اجازت نشته. اوهرکله چې وکیل ته د اقرار اجازت نشته.نود شبه په بناء باندې به په موکل باندې د وکیل اقرار نه قبلیږي.

## دخصومت په توکیل کښې د مخالف فریق د رضا مندئ حکم

وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَايَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِالْخُصُومَةِ إِلَّابِرِضَا الْخَصْمِ او امام ابوحنیفه ﷫ فرمائي.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر د خصومت وکیل جوړول جائز نه دی. إِلَّاأَنْ يَكُونَ الْمُوَكِّلُ مَرِيضًا خو دا چې موکل بیمار وی. أَوْغَائِبًا مَسِيرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا یا د درې ورځو یا د زیات مودې مسافه باندې غائب وی.

حل اللغة: ① الخصم جګړه کونکې ، فریق مخالف ② مسیرة فاصله

تشریح: علامه مرغینانی ﷫ فرمائي.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر د خصومت وکیل جوړولو په جواز کې د فقهاؤ اختلاف دي.امام ابوحنیفه ﷫ فرمائي.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر د خصومت وکیل جوړول ناجائز دی.که موکل مدعی وی.اوکه مدعی علیه وی.سړې وی.اوکه ښځه وی.پرده نشین وی اوکه غیرپرده نشین وی.باکره وی.اوکه ثیبه وی.یعنی که مدعی د مدعی علیه د رضامندئ نه بغیر خصومت (ځواب ورکولو) لپاره وکیل جوړکړو.نو بیا هم ناجائز ده.البته که موکل بیمار وی.یا د درې ورخو یا د درې ورځو نه زیات مودې مسافه باندې غائب وی.نو دهغه لپاره د خصم د رضامندئ نه بغیر وکیل جوړول جائز دی.د بیمارئ نه مراد نفس ناروغی (ناروغی (بیماری)) او مطلقاً ناروغی (ناروغی (بیماری)) ده.بعض حضرات فرمائي.داسې بیمار ده.چه هغه بیمارئ سره په خاروی باندې سوریدل، اود قاضی مجلس ته حاضریدل،او د تکلیف یا نقل وحرکت سره د مرض زیاتیدلو خطره وی.

وَقَالَا: يَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِغَيْرِ رِضَا الْخَصْمِ([1])او صاحبین ﷬ فرمائي.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر وکیل جوړول جائز دی وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللَّهُ.او هم دا د امام شافعی ﷫ قول دې..وَلَاخِلَافَ فِي الْجَوَازِاو په جواز کې هیڅ اختلاف نشته. إِنَّمَا الْخِلَافُ فِي اللُّزُومِ بلکه په لازم کیدلو کې اختلاف دې.

تشریح: صاحبین ﷬ فرمائي.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر وکیل کول جائز نه دی.هم دا قول د امام شافعی ﷫ دې.او امام مالك او امام محمد ﷬ هم ددې قائل دی.صاحب دهدایه ﷫ فرمائي.چه د حضرت امام صاحب او دصاحبینو ﷬ په منځ کې د توکیل بالخصومت په جواز کې هیڅ اختلاف نشته.بلکه په لزوم کې اختلاف دې.یعنی که موکل د خصم د رضامندئ نه بغیر څوك د خصومت وکیل جوړ کړو.نو دا وکیل کول د امام صاحب او د صاحبینو ﷬ دریو وارو په نیز جائز دی.خو په لزوم کې اختلاف دې.یعنی د امام صاحب ﷫ په نیز به دا توکیل لازم نه وی.بلکه د خصم په رد کاوه سره به ردکیږي.او د خصم د رد کاوو نه روسته که وکیل د قاضی په عدالت کې خصومت پیش کوی.نو په خصم به د قاضی په عدالت کې نه حاضریدل لازم وی.او نه به ځواب ورکول لازم وی.او د صاحبینو ﷬ په نیز به دا توکیل لازم وی.یعنی د

[1]) القول الراجح هو قول الصاحبين ﷬ كذا فى ردالمحتار(٤٤٦\٤) وتقريرات الرافعى (٢١٥\٢) والهندية (٦١٥\٣) والبحرالرائق (٦١٥\٣) وتبيين الحقائق (٢٥٥\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٤٩\٢)



خصم په رد کاوه سره به دا توکیل نه ردکیږي.بلکه په خصم به دا لازم وي.چه د قاضی په عدالت کې حاضر شي.او د وکیل د پیش کړې خصومت ځواب ورکړي.

د صاحب دهدایه ﷫ په دې تقریر چې اختلاف په لزوم کې دې.د قدوری د عبارت «لایجوز التوکیل بالخصومة لایلزم» په معنی کې شو.یعنی جواز ونیلو سره لزوم مراد اخستې شوې دې.او د عبارت ژباړه داده.چه امام صاحب ﷫ اوفرمائیل.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر به توکیل بالخصومت لازم نه وی.خودا چې موکل بیمار وی.یا درې ورځې یا د درې ورځو د مسافه نه زیات غائب وی.او صاحبین ﷬ فرمائي.چه د خصم د رضامندئ نه بغیر هم توکیل بالخصومت لازمیږي.بهرحال د امام صاحب ﷫ په نیز د خصم رضامندی نه بغیر توکیل بالخصومت نه لازمیږي.بلکه د خصم په رد کاوه سره ردکیږي.مګر داچه موکل بیمار وی.یامسافر وی.د صاحبینو ﷬ په نیز د خصم د رضامندئ نه بغیر توکیل بالخصومت لازمیږي.د خصم په رد کاوه سره نه ردکیږي.

لَهُمَاأَنَّ التَّوْكِيلَ تَصَرُّفٌ فِي خَالِصِ حَقِّهِ د صاحبینو ﷬ دلیل دادې.چه وکیل خالص پخپل حق کې تصرف دې. فَلَايَتَوَقَّفُ عَلَى رِضَاغَيْرِهِ نو دا به د غیر په رضامندئ به نه موقوف کیږي. كَالتَّوْكِيلِ بِتَقَاضِي الدُّيُونِ لکه د پور وصولولو لپاره وکیل جوړول.

حل اللغة: ① لایتوقف: نه موقوف کیږي ② التوکیل: وکیل جوړول ③

تشریح: دصاحبینو ﷬ دلیل دادې.چه وکیل جوړول خالص پخپل حق کې تصرف دې.ځکه چې موکل د خصومت وکیل جوړکړې دې.یا د ځواب ور کاوه وکیل کړې ئې دې.او خصومت خالص د موکل حق دې.او پخپل خالص حق کې تصرف کول د بل چا په رضامندئ باندې موقوف نه وی.نود خصومت لپاره وکیل کول به هم د خصم په رضامندئ باندې موقوف نه وی.لکه څنګه چې د قرضو وصولولو لپاره وکیل جوړول د قرضدارانو په رضامندئ باندې موقوف نه وی.ځکه چې د موکل دقرضو وصولولو لپاره وکیل جوړول خالص پخپل حق کې تصرف دې.نودا توکیل به د قرضدارانو په رضامندئ باندې موقوف نه وی.او د قرضو ادا کاوه لپاره وکیل جوړول د قرضخواهانو په رضامندئ باندې موقوف نه دی.ځکه چې د قرضو ادا کاوه لپاره وکیل جوړول خالص د موکل حق دې.نودا وکیل جوړول به د قرضخواهانو په رضامندئ باندې موقوف نه وی.

وَلَهُ أَنَّ الْجَوَابَ مُسْتَحَقٌّ عَلَى الْخَصْمِ د امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې.چه په خصم باندې ځواب ورکول لازم دې. وَلِهَذَا يَسْتَحْضِرُهُ په دې وجه په مدعی خصم د قاضی په مجلس کې حاضروی.

حل اللغة: ① مستحق: لازم دې ② یستحضر: د استحضار نه ماخوذ دې حاضروی

تشریح: د امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې. چې د صاحبینو ﷬ دا ونیل.چه د خصومت لپاره وکیل کول دموکل خالص پخپل حق کې تصرف کول دی.مونږه دا خبره نه منو.ځکه چې مثلاً مدعی علیه باندې مدعی لپاره ځواب ورکول د مدعی حق دې.او مدعی علیه باندې واجب دې.په دې وجه مدعی ، مدعی علیه د قاضی په مجلس کې حاضروی.نوهرکله چې ځواب ورکول د مدعی حق دې.نو ځواب ورکول خالص د مدعی علیه حق پاتې نشو.اوس که مدعی علیه ځواب ور کاوه لپاره څوك وکیل جوړوی.نو دا وکیل کول د مدعی علیه خالص پخپل حق کې تصرف کول نه دی.بلکه د مدعی په حق کې هم تصرف دې.نود وکیل کاوه لپاره به دمدعی رضامندی ضروری وی.د مدعی د رضامندئ نه بغیر د مدعی علیه د اړخه وکیل مقررول جائز نه دی.دا دلیل به صرف په دې صورت کې منطبق کیږي.کله چې د مدعی علیه دارخه وکیل مقررکړې شوې وی.لکه څنګه چې خادم په مثلاً ونیلو سره ددې وضاحت کړې دې.

وَالنَّاسُ مُتَفَاوِتُونَ فِي الْخُصُومَةِ او په خصومت کې د خلګو حالتونه متفاوت (مختلف) دی. فَلَوْقُلْنَابِلُزُومِهِ نو که

موږ ددې د لزوم قائل شو. يَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره به بل ته ضرر رسيږي. فَيَتَوَقَّفُ عَلَىٰ رِضَاهُ نو دده په رضامندئ باندې موقوف دې.

**حل اللغة:** ① **متفاوتون:** جمع د متفاوت ده ،فرق لرونکي ،جدا کيدونکي ② **يتضرر** ضرر رسيږي

**تشريح:** دوهم دليل دادې چه مونږه دا خبره منو چه وکيل کول خالص د مؤکل په حق کي تصرف دې. خود انسان خالص خپل حق کي تصرف کول هغه وخت صحيح کيږي. کله چې په دې تصرف سره بل سړي ته ضرر نه رسيږي. او که بل کس ته ضرر رسيږي. نو د هغه د رضامندئ نه بغير به تصرف کول جائز نه وي. دلته کي هم داخبره ده. يعنی چې کله مؤکل د خصومت لپاره څوك وکيل جوړوي. نو په دې وکيل کاوه سره دده مقصدخپل خصم ته ضرر رسول وي. ځکه چې د خصومتونو په سلسله کي د خلګو حالتونه متفاوت وي. بعض خلګ داسې ذهين او چالاکه وي. چه هغوی غلط خبره هم صحيح ثابتوی. او بعض داسې نابلده او چټل ذهن والا (غبی) وي. چه هغوی صحيح خبره هم صحيح نشی ثابتولې. نو ډيره ممکن ده. چه مؤکل د خصومت لپاره داسې ذکی ( ذهين) او چالاکه سړې وکيل مقرر کړی. چه په دې سره دده مقصد خصم ته ضرر رسول وی. نو که موږ دا اووايو. چه د خصومت لپاره وکيل جوړول جائز دی. او دا وکالت لازميږی. يعنی د خصم په رد کاوه سره نه ردکيږی. نو په دې سره به دده خصم ته ضرر رسيږی. او هرکله چې د مؤکل خصم ته ضرر رسيږي. نو د خصومت لپاره وکيل کول به د خصم په رضامندئ باندې موقوف وی. د رضامندئ نه بغير به دا توکيل نه لازميږی.

كَالْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ إِذَا كَاتَبَهُ أَحَدُهُمَا لکه عبد مشترك. کله چې دې يو مالك مکاتب کړی. يَتَخَيَّرُ الْآخَرُ نو دوهم ته به اختيار وی.

**حل اللغة:** ① **يتخير** اختيار ملاويږی، اختيار او واک لری

**تشريح:** لکه مثلاً [1] يو غلام د دوې (دوه) سړو په منځ کې مشترك وی. او په دوی دواړوکي يو سړې دا مشترك غلام مکاتب کړی. نو دا عقد کتابت په دوهم شريك باندې نه لازميږی. بلکه هغه ته به اختيار وی. که غواړی نو عقدکتابت دې نافذ کړی. اوکه غواړی. نو فسخ دې کړی. ځکه چې عبد مشترك مکاتب کول اګرچه خالص د مکاتب کونکی په حق کي تصرف دې. خو په دې سره به دوهم شريك ته ضرر رسيږی. په دې وجه به دده مکاتب کول د دوهم شريك په رضامندئ باندې موقوف وی. [2] اولکه مثلاً يو سړی د يو کس اس د سوارلئ لپاره په اجرت (کرايه) باندې واخستلو. اوس که مستاجر هم دا مذکوره اس دوهم سړی ته په اجرت باندې ورکړی. نود مستاجر دا اس په اجرت باندې ورکول اګرچه پخپل حق او خپل مملوك کي تصرف دې. خو ددې باوجود جائز نه دې. ځکه چې په دې کي د موجر يعنی د اصل مالك ضرر دې. ځکه چې خلګ د سوارلئ کاوه په سلسله کي متفاوت دی. بعض خلګ تجربه کار وی. د هغوی په سوارلئ کاوه سره حيوان (څاروی) بالکل نه ستړې کيږی. او بعض داسې نالائقه او ناتجربه کار وی. چه هغوی حيوان (څاروې) په مشقت کي اخته کوی. نودضرر ددې احتمال په وجه مستاجر لپاره دموجر (مالك) درضامندئ نه بغير اس په اجرت باندې ورکول جائز نه دی. په خلاف د پور وصولولو لپاره د وکيل جوړولو، ځکه چې قرضه د قرضخواه يو معلوم او ثابت حق دې. وکيل قرضدار ته د ضرر رسولو نه بغير په دې باندې قبضه کوی. په دې وجه د پور وصولولو لپاره د قرضدار د رضامندی نه بغير وکيل جوړول جائز دی.

بِخِلَافِ الْمَرِيضِ وَالْمُسَافِرِ په خلاف د بيمار او مسافر، لِأَنَّ الْجَوَابَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهِمَا هُنَالِكَ ځکه چې دلته کي په دې دواړو باندې ځواب ورکول لازم نه دې.

**تشريح:** پاتې شوه داخبره چې د امام صاحب رحمه الله په نيز که مؤکل بيمار وی. يا مسافر وی. نو هغه لپاره د خصم د رضامندئ نه بغير وکيل جوړول ولې جائز دی ؟ نو ددې ځواب دادې. که مؤکل ( مدعی عليه) بيمار وی. نود بيمارئ په وجه هغه باندې ځواب ورکول واجب نه دی. اوکه مسافر وی. نود غائب والی په وجه ځواب



ورکول واجب نه دې. اوهرکله چې په دوی باندې دچا لپاره ځواب وکول واجب نه دی. نو دوی په وکيل جوړولو سره خالص پخپل حق کي تصرف کړې دې. او په دې سره ئې مدعی ته د ضرر رسولو اراده هم نه ده کړې. نود بيمار او مسافر لپاره وکيل جوړول کي چاته د ضرر رسولو اراده نشته. او خالص پخپل حق کي تصرف دې. نو ددوی دا تصرف به د خصم په رضامندئ باندې موقوف نه وی. بلکه دده د رضامندئ نه بغير به جائز وی.

لَوْ كَمَا يَلْزَمُ التَّوْكِيلُ عِنْدَهُ مِنَ الْمُسَافِرِ بيا لکه څنګه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مسافر د اړخه توکيل جوړول لازميږی. يَلْزَمُ إِذَا أَرَادَ السَّفَرَ هم دغه ډول کله چې د سفر اراده اوکړی. نو لازميږی. لِتَحَقُّقِ الضَّرُورَةِ ځکه چې اړتيا متحقق دې.

**حل اللغة:** ① **التحقق** ثبوت، ثابتيدل ② **يلزم** لازميږی

**تشريح:** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز لکه څنګه چې د خصم رضامندئ نه بغير د مسافر د اړخه وکيل کول جائز دی. دغه ډول کله چې مؤکل د سفر اراده اوکړی. نو بيا هم دخصم د رضامندئ نه بغير وکيل کول جائز دی. ځکه چې په دې صورت کي هم د وکيل جوړولو اړتيا متحقق دې. خو قاضی دهغه د سفر په اراده کي د هغه تصديق نه کوی. بلکه د هغه د سفر ملګرونه به معلومات کوی. يا به د هغه د سفر د وعدې انتظار کوی. يعنی که دهغه د سفر اراده صحيح ثابت شوه. نود هغه د اړخه به توکيل قبلولې شی. ګنی نه به قبليږی.

وَلَوْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ مُخَدَّرَةً اوکه څوك پرده نشين ښځه وی. لَمْ تَجْرِ عَادَتُهَا بِالْبُرُوزِ چې د هغې عادت بهر ته د وتلو، وَحُضُورِ مَجْلِسِ الْحُكْمِ او د حاکم په مجلس کي د حاضريدلو نه وی. قَالَ الرَّازِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: يَلْزَمُ التَّوْكِيلُ نو ابوبکر رازی رحمه الله فرمائی. چه دهغې وکيل جوړول لازم دی. لِأَنَّهَا لَوْ حَضَرَتْ ځکه که حاضره شی. لَا يُمْكِنُهَا أَنْ تَنْطِقَ بِحَقِّهَا لِحَيَائِهَا نو بيا به هم د هغې لپاره د شرم په وجه خپل حق سره کلام کول ممکن نه وی. فَيَلْزَمُ تَوْكِيلُهَا. نو د هغې وکيل جوړول به لازم وی. قَالَ رضي الله عنه مصنف رحمه الله فرمائی: وَهَٰذَا شَيْءٌ اسْتَحْسَنَهُ الْمُتَأَخِّرُونَ چې دا قول متاخرينو (عالمانو) مستحسن ګرخولې دې.

**حل اللغة:** ① **مخدرة:** پرده دارهٔ ② **البروز:** د کور نه بهر وتل ③ **تنطق:** چه ښځه خبرې اوکړی

**تشريح:** که يوه پرده نشينه وی د هغې بهرته د وتلو عادت نه وی او نه د قاضی مجلس ته د حاضريدو عادت ئې وی نو امام ابوبکر احمد الرازی فرمايي چې د داسې ښځې د اړخه د خصم د رضا مندئ نه بغير توکيل لازميږی ځکه که هغه عدالت ته حاضره شی نو بيا به هم د شرم او حيا په وجه خبری نشی کولې او د هغې حق به ضائع شی ځکه به د هغې وکيل کول جائز. او لازم وی هم دا متاخرينو عالمانو مستحسن ګرځولې ده

## دوکالت نور شرطونه

قَالَ: وَمِنْ شَرْطِ الْوَكَالَةِ او د وکالت په شرطونوکي ( يو شرط) دادې. أَنْ يَكُونَ الْمُوَكِّلُ مِمَّنْ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ چې مؤکل داسې سړې وی. کوم چې د تصرف اختيار لری. وَتَلْزَمُهُ الْأَحْكَامُ او په هغه باندې احکام لازميږی.

**تشريح:** په دې عبارت کي مصنف رحمه الله د وکالت يو شرط ذکر کړی دی. چه مؤکل داسې سړې وی. چه هغه ته پخپله د تصرف اختيار حاصل وی. اود هغه په ذمه احکام لازميږی.

لِأَنَّ الْوَكِيلَ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ مِنْ جِهَةِ الْمُوَكِّلِ ځکه چې وکيل ته د مؤکل د اړخه د تصرف اختيار حاصليږی. فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمُوَكِّلُ مَالِكًا نو ضروری ده. چه مؤکل پخپله ددې تصرف مالك وی. لِيُمَلِّكَهُ مِنْ غَيْرِهِ چې بل څوك ددې (تصرف) مالك کړې شی.

**حل اللغة:** ① **جهة:** طرف ② **فلابد:** ضروری ده ③ **يملك:** د لام پر(په) تشديد سره مالک جوړ کړې شی

**تشريح:** دليل دادې چه وكيل د نائب كيدلو په وجه ولايت، صرف د موكل د اړخه حاصلوی. او د موكل د اړخه تصرف باندې قادر كيږی. او كوم كس چې پخپله په يو شي باندې قادر نه وی. هغه بل كس ته څنګه قدرت وركولې شی. نود موكل پخپله هم تصرف باندې قادر كيدل ضروری دی. چه بل يعنی وكيل ته په دې باندې قدرت وركړې شی.

علامه بدرالدين رحمه الله د موكل صاحب تصرف كيدل، او د هغه په ذمه احكام لازميدل، په موكل كي يو شرط شماركړې دې. خو علامه ابن الهمام رحمه الله (صاحب فتح القدير) په موكل كي دوې (دوه) شرطونه شمار كړی دی. ① موكل صاحب تصرف وی. يعنی د تصرف اختيار هغه ته حاصل دې. ② د هغه په ذمه احكام لازميږی. دا دوهم شرط د صبی محجور او عبدمحجور (چاته چې د تجارت وغيره اجازت نه وی) نه احتراز دې. څكه چې ددوی په ذمه احكام نه لازميږی. كه دوی دواړو څه شی واخستلو. نو دوی به د هغې مالك نه وی. يعنی عقد شراء به ددوی په ذمه لازم نه وی. نو هركله چې دوی دواړه د خپل اخستې شوی شي نه مالك كيږی. نو د يو څيز اخستلو خرڅولو لپاره به ددوی دواړو وكيل كول څنګه صحيح وی؟ بهرحال د متن ذكرشوې عبارت دواړه شرطونه (په موكل كي) وی. يا د دواړو مجموعه يو شرط (موجود) وی.

**السوال** ﴿ دلته يو اشكال دې. هغه دا چې په موكل كي دا شرط لګول،، چې موكل پخپله هم د تصرف اختيار لری ،،دا د صاحبينو رحمهما الله د قول په بناء باندې صحيح دې. څكه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مسلمان د خمر او خنزير د بيع يا شراء لپاره د ذمی وكيل كول جائز نه دی. خود امام صاحب رحمه الله په نيز دا شرط صحيح نه دې. څكه چې دامام صاحب رحمه الله په نيز مسلمان لره د خمر بيع اوشراء لپاره ذمی وكيل كول جائز دی. حالانكه مسلمان (موكل) پخپله ددې تصرف مالك نه دې. يعنی مسلمان ته شرعاً ددې د خرڅولو اخستلو اجازت نشته. دغه ډول محرم (په حالت د احرام كي) حلال يعنی غيرمحرم دشكار د بيع وكيل جوړولې شی. خو موكل پخپله ددې مالك نه دی.

**الجواب** ﴿ د حضرت امام صاحب رحمه الله په قول باندې ددې څواب دادې. چه د موكل د تصرف مالك كيدلو نه مراد دادې چه موكل د اصل تصرف مالك وی. اګرچه بعض ځائې كي د نهی د عارض په وجه تصرف كول ممنوع دی. نود اصل په اعتبار سره مسلمان لپاره د شرابو اخستل خرڅول جائز دی. لكه چې د نهی نه وړاندې د شرابو اخستل خرڅول جائز وو. اګرچه د نهی د عارض يعنی د الله ﷻ او د رسول الله ﷺ منع كاوه سره د شرابو اخستل خرڅول مسلمان لپاره ممنوع شوی دی. دغه ډول محرم د اصل په اعتبار سره د اخستلو خرڅولو مالك دې. اګرچه د نهی د عارض يعنی د رسول الله ﷺ په منع كاوه سره ممتنع شوې دې. بهرحال هركله چې مسلمان د اصل په اعتبار سره د شرابو اخستلو خرڅولو مالك دې. او محرم د ښكار د اخستلوخرڅولو مالك دې. نود موكل مالك تصرف كيدل ثابت شو.

| |
|---|
| ﴿وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ الْوَكِيلُ مِمَّنْ يَعْقِلُ الْعَقْدَ﴾ ودا شرط هم دې چه وكيل داسې سړې وی. چه په عقد پوهيږی. ﴿وَيَقْصِدُهُ﴾ او د هغې قصد كوی. |

**حل اللغة:** ① **يعقل** پوهيږی ② **يقصد** قصد كولې شی

**تشريح:** په دې عبارت كي د دوهم شرط ذكر دې چې د كوم چې په وكيل كي موجود كيدل ضروری دی. دا دې چه وكيل داسې سړې وی. چه دعقد معنی او مفهوم باندې پوهيږی. يعنی په دې پوهيږی. چه بيع سالب ده. او شراء جالب ده. يعنی د بيع په وجه مبيع نه د بائع ملك مسلوب كيږی. او د شراء په وجه مشتری لپاره ملك مبيع حاصليږی. اودغبن يسيراوغبن فاحش نه خبروی. اووكيل ددې عقد قصد كوی. يعنی په عقد كولو كي هزل كونكې نه وی. بلكه قصد كونكې وی.

| |
|---|
| ﴿لِأَنَّهُ يَقُومُ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ فِي الْعِبَارَةِ﴾ څكه چې وكيل په عبارت بيانولو كي د موكل قائم مقام وی. ﴿فَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ﴾ نود وكيل اهل عبارت څنې كيدل شرط دی. ﴿حَتَّى لَوْ كَانَ صَبِيًّا لَا يَعْقِلُ﴾ تردې كه |



| |
|---|
| وكيل ناپوهه ماشوم وی. ﴿أَوْ مَجْنُونًا﴾ يا ديوانه وی. ﴿كَانَ التَّوْكِيلُ بَاطِلًا﴾ نو توكيل باطل دې. |

**حل اللغة:** ① **اهل العبارة** لائق د خبرو كولو، د خپلې مدعی بيانولو ② **صبی** ماشوم ③ **مجنون** ليونې

**تشريح:** دليل دادې چه په عبارت بيانولو او كلام كاوه كي وكيل د موكل قائم مقام وی. نو په وكيل كي د عبارت بيانولو اهليت او لياقت كيدل ضروری او شرط دی. او دعبارت بيانولو اهليت د عقل مميز په ذريعه كيږی. په دې وجه د وكيل عاقل كيدل ضروری دی. نو كه وكيل غير عاقل ماشوم وی. يا مجنون وی. نو دا توكيل باطل دې. څكه چې ددوی دواړو په كلام سره هيڅ حكم نه متعلق كيږی.

### د آزاد، عاقل، بالغ او ماذون لپاره د وكيل جوړولو حكم

| |
|---|
| ﴿وَإِذَا وَكَّلَ الْحُرُّ الْعَاقِلُ الْبَالِغُ أَوِ الْمَأْذُونُ مِثْلَهُمَا جَازَ﴾ وازادعاقل بالغ، يا ماذون خپل مثل وكيل جوړكړو. نو جائز دې. |

**تشريح:** **المذهبان فيه** ﴿ ① داحنافو رحمهم الله په نيز كه آزاد، عاقل، بالغ، يا عبدماذون له فی التجارة، يا يو داسې ماشوم چې هغه د بيع او شراء په معنی باندې پوهيږی. او ماذون له فی التجارة د خپلې درجې څوك سړې وكيل كړو. نو دا وكيل كول صحيح دی. صاحب د عنايه رحمه الله فرمائی. چه هركله خپل هم مثل وكيل كول جائز دی. نو دخان نه د ښه حالت انسان وكيل جوړول به په درجه اولی جائز وی. كه يو آزاد، عاقل، بالغ څوك داسې محجور (غير ماذون له) ماشوم وكيل كړو. چې د بيع او شراء په معنی پوهيږی. يا ئې محجور عليه (غيرماذون له) غلام وكيل كړو. نو دا وكيل كول جائز دی. خو ددوی دواړو سره به حقوق د بيع نه متعلق كيږی. بلكه د هغوی موكلينو سره به متعلق كيږی. ② امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې. امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه صبی محجورعليه او عبد محجورعليه وكيل كول جائز نه دی.

| |
|---|
| ﴿لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ مَالِكٌ لِلتَّصَرُّفِ﴾ څكه چې موكل د تصرف مالك دې. ﴿وَالْوَكِيلَ مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ﴾ او وكيل د اهل عبارت څنې دې. ﴿وَإِنْ وَكَّلَا صَبِيًّا مَحْجُورًا يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ﴾ او كه دا محجور ماشوم چې په بيع شراء باندې پوهيږی. ﴿أَوْ عَبْدًا مَحْجُورًا﴾ يا غلام محجور وكيل جوړ كړو. ﴿جَازَ﴾ نو جائز دې. ﴿وَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِمَا الْحُقُوقُ﴾ او ددوی دواړو سره به حقوق نه متعلق كيږی. ﴿وَيَتَعَلَّقُ بِمُوَكِّلِهِمَا﴾ البته ددوی موكل سره به متعلق كيږی. ﴿لِأَنَّ الصَّبِيَّ مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ﴾ څكه بچې د اهل عبارت څنې دې. ﴿أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَنْفُذُ تَصَرُّفُهُ بِإِذْنِ وَلِيِّهِ﴾ آيا نه ګورې، چې د عاقل بچې تصرف د هغه د ولی په اجازت سره نافذ كيږی. ﴿وَالْعَبْدَ مِنْ أَهْلِ التَّصَرُّفِ عَلَى نَفْسِهِ﴾ او غلام پخپل ذات باندې د تصرف لياقت لری ﴿مَالِكٌ لَهُ﴾ د تصرف مالك دې. ﴿وَإِنَّمَا لَا يَمْلِكُهُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى﴾ صرف ده ته د مولا په حق كي د تصرف اختيار نشته. ﴿وَالتَّوْكِيلُ لَيْسَ تَصَرُّفًا فِي حَقِّهِ﴾ او توكيل د مولا په حق كي تصرف كول نه دی. ﴿أَمَّا الصَّبِيُّ لِقُصُورِ أَهْلِيَّتِهِ﴾ خو ددوی دواړو د اړخه عهده لازم نه صحيح كيږی. بهرحال ماشوم، نو دده د ولايت قاصر كيدلو په وجه، ﴿وَالْعَبْدُ لِحَقِّ سَيِّدِهِ﴾ او غلام د هغه دمولا د حق په وجه، ﴿فَتَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ﴾ نو (دا حقوق) به د موكل په ذمه لازم وی.. |

**حل اللغة:** ① **محجور** د تصرف كولو نه بند كړې شوې ② **قصور** كموالې

**تشريح:** **دليلهم** ﴿ د وكالت صحيح كيدلو دوې (دوه) شرطونه دی. يو داچه موكل د تصرف مالك وی. او احكام په ده باندې لازميږی. دوهم داچه وكيل د عقد معنی او مفهوم نه خبر وی. او د عبارت بيانولو اهل وی. او دلته كي الحمدلله دواړه شرطونه موجود دی. څكه چې موكل آزاد، عاقل، بالغ، كيدلو په وجه د تصرفاتو مالك هم دې. او په ده باندې احكام عقد هم لازميږی. او وكيل صبی عاقل دې. او صبی عاقل د عبارت

[1]) القول الراجح هو ظاهر الرواية كذا فی نتائج الأفكار(۷\۱۵) وردالمحتار(٤\٤٤۷) والهندية (۳\۵۶۲) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱٤۹)_

بيانولو اهل وي.د صبي عاقل تصرف د هغه د ولي په اجازت سره نافذ كيږي.نو هركله چې صبي عاقل د عبارت بيانولو لياقت لري.او د وكيل كيدلو هم دا ضروري ده.نود صبي عاقل وكيل كيدل صحيح او جائز دي.او پاتې شو غلام،نو هغه هم د تصرف مالك دي.او پخپل ذات باندې د تصرف حق لري.هم دا وجه ده.كه غلام پخپل ځان باندې دځا لپاره اقرار اوكړي.نو د آزاديدلو نه روسته په هغه باندې دا مال لازميږي.اود غلام پخپل ځان باندې د قصاص او حدودو اقرار كول صحيح دي.بهرحال غلام پخپل ذات باندې د تصرف اهل دي. اګرچه د مولا په حق كې د تصرف مالك نه دي.اود موكل د اړخه څوك غلام وكيل كول دهغه د مولا په حق كې تصرف نه دي.ځكه چې د توكيل صحت د وكيل عبارت او اهليت سره متعلق كيږي.او په دې دواړو خبروكې غلام د سړي كيدلو په حيثيت سره په اصل حريت باندې پاته دي.يعنې په دې دواړو خبروكې غلام د آزاد پشان دي.نو هركله چې غلام پخپل ذات باندې د تصرف مالك دي.او توكيل د مولا په حق كې تصرف هم نه دي.نود غلام وكيل كول صحيح دي.البته دومره خبره ده.چه په صبي او غلام باندې هيڅ ذمه داري نه لازميږي.په صبي باندې ځكه،چه د عدم بلوغ په وجه دده لياقت او اهليت ناقص دي.او غلام باندې ځكه چې دده مولا ته به ضرر وي.نود مولا د حق په وجه د مولا نه ضرر لرې كاوه لپاره به په غلام باندې هم هيڅ ذمه داري نه راځي.بهرحال هركله چې صبي او غلام باندې هيڅ ذمه داري نه راځي.نو ددوي دواړو سره به حقوق نه متعلق كيږي.بلكه ددوي دواړو موكلانو سره به حقوق متعلق وي.

| |
|---|
| وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ اود ابويوسف رحمه الله نه نقل دي. أَنَّ الْمُشْتَرِيَ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِحَالِ الْبَائِعِ كه مشترى د بائع د حال نه خبر نه وو ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ صَبِيٌّ أَوْ مَجْنُونٌ مَحْجُورٌ بيا هغه ته معلومه شوه.چه دا ماشوم، يا مجنون، يا محجور غلام دي لَهُ خِيَارُ الْفَسْخِ.نو هغه لپاره د بيع فسخ كاوه اختيار دي. لِأَنَّهُ دَخَلَ فِي الْعَقْدِ عَلَى ظَنٍّ ځكه چې مشترى په عقد كې په دې ګمان سره داخل شوې وو. أَنَّ حُقُوقَهُ تَتَعَلَّقُ بِالْعَاقِدِ، چې ددې حقوق عاقد سره متعلق كيږي فَإِذَا ظَهَرَ خِلَافُهُ.نو هركله چې ددې خلاف ښكاره شوه. يَتَخَيَّرُ نو هغه به اختيارمند وي. كَمَا إِذَا عَثَرَ عَلَى عَيْبٍ.لكه چې كله دې د مبيع په عيب باندې خبرشي.( او د واپس كاوه اختيار وي ) |

**حل اللغة:** ① الخيار: اختيار ② الفسخ: عقد ماتول ③ عثر: خبر شي

**تشريح:** د حضرت امام ابويوسف رحمه الله نه روايت كه د اخستلو په وخت مشترى ته د بائع ( د وكيل بالبيع كيدو) حال معلوم نشو.چه هغه آزاد، عاقل، بالغ دې.اوكه نه دې.بيا روسته معلومه شوه.چه بائع صبي دې. يا مجنون دې.يا عبد محجورعليه دې.نو په دې صورتونوكې مشترى ته د عقد بيع فسخ كاوه اختيار وي. ځكه چې مشترى د عقد شراء معامله په دې ګمان كړې وه.چه ددې عقد واړه حقوق به عاقد ( وكيل بالبيع) سره متعلق وي.خوكله چې ددې خلاف ښكاره شوه.او پته اولګيدله.چه ددې عقد حقوق عاقد ( وكيل بالبيع) سره متعلق نه دي.بلكه د هغه موكل سره متعلق دي.نود وصف مرغوب فيه فوت كيدلو په وجه د هغه رضامندي مختل شوه.او هركله چې رضامندي مختل شوه.نو هغه ته به اختيار حاصل وي.كه فسخ كوي.او كه پاته ئې ساتي.لكه مشترى كه د اخستلو نه روسته د مبيع په عيب باندې خبر شو.نو مشترى ته د خيارعيب لاندې د فسخ كاوه پوره پوره اختار دې.

### د وكيل خپل ځان طرف ته عقد منسوب كولو سره د حقوقو حكم

| |
|---|
| قَالَ (وَالْعَقْدُ الَّذِي يَعْقِدُهُ الْوُكَلَاءُ عَلَى ضَرْبَيْنِ) هغه عقد كوم چې وكيلان منعقد كوي.په دوې (دوه) قسمه دي. كُلُّ عَقْدٍ يُضِيفُهُ الْوَكِيلُ إِلَى نَفْسِهِ هرهغه عقدكوم چې وكيل خپل ځان اړخ ته منسوب كوي كَالْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ لكه بيع او اجاره. فَحُقُوقُهُ تَتَعَلَّقُ بِالْوَكِيلِ دُونَ الْمُوَكِّلِ نو د هغې حقوق وكيل سره متعلق كيږي. موكل سره نه ( متعلق) كيږي. |

**حل اللغة:** ① يضيف: اضافت كوي،نسبت كوي



**تشريح:** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.كوم عقد چې وكيل منعقد كوي.د هغې دوې (دوه) قسمونه دي.① يو هغه عقد كوم چې وكيل سره متعلق كيږي.② دوهم هغه عقد د كوم حقوق چې موكل سره متعلق كيږي د رومبي ډول لپاره قاعده داده.چه كوم عقد وكيل خپل ځان اړخ ته منسوب كړي.اود هغه منسوب كول صحيح وي.او موكل اړخ ته منسوب كاوه نه بې نيازه ( عاجزه) وي.لكه بيع او اجاره.نو د هغه عقد حقوق به وكيل سره متعلق وي.او موكل سره به متعلق نه وي.يعنې د هغه عقد د حقوقو ذمه داري به وكيل باندې عائد كيږي.په موكل به نه عائد كيږي.مثلاً وكيل اوونيل.چه ما ستا په لاس دا شي خرڅ كړې دې.نو د مبيع سپارل د وكيل په ذمه دي.علامه ابن الهمام رحمه الله په دې قاعده باندې نقض وارد كړې دې.فرمائي كه وكيل صبي محجورعليه وي.يا عبد محجور عليه وي.نو ددوي دواړو د عقد حقوق موكل سره متعلق كيږي. اګرچه عقد وكيل خپل ځان اړخ ته منسوب كوي.لكه څنګه چې په مخكنۍ مسئله كې تير شو.

| |
|---|
| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ تَتَعَلَّقُ بِالْمُوَكِّلِ او امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه دا حقوق موكل سره متعلق كيږي. لِأَنَّ الْحُقُوقَ تَابِعَةٌ لِحُكْمِ التَّصَرُّفِ ځكه چې حقوق د حكم تصرف تابع دي. وَالْحُكْمُ وَهُوَ الْمِلْكُ يَتَعَلَّقُ بِالْمُوَكِّلِ،او حكم يعنې ملك موكل سره متعلق دې. فَكَذَا تَوَابِعُهُ نو دغه ډول به ددې توابع هم ( موكل سره متعلق كيږي ). وَصَارَ كَالرَّسُولِ وَالْوَكِيلِ بِالنِّكَاحِ او ( وكيل) د قاصد ، او وكيل في النكاح پشان شو. |

**تشريح:** **مذهب الشافعي**⊙حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د عقد حقوق موكل سره متعلق كيږي.يعنې د عقد د حقوقو ذمه داري موكل باندې عائد كيږي.په وكيل باندې نه عائد كيږي.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي.

**دليله**⊙د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه د عقد حقوق د تصرف د حكم يعنې د ملكيت تابع دي.او حكم يعنې ملكيت موكل سره متعلق كيږي.يعنې كه د عقد تصرف وكيل بالبيع اوكړو.نو موكل به د ثمن مالك وي.او كه وكيل بالشراء د عقد تصرف اوكړو.نو موكل به د مبيع مالك وي.بهرحال ملكيت موكل لپاره ثابتيږي.او هركله چې ملكيت دموكل لپاره ثابتيږي.نو ددې توابع يعنې د عقد حقوق به هم موكل لپاره ثابتيږي.او موكل سره به متعلق كيږي.او په دې ډول كې وكيل د قاصد او وكيل بالنكاح پشان شو.او قاصد او وكيل بالنكاح بالاتفاق د د عقد د حقوقو ذمه دار نه وي.يعنې حقوق نه قاصد اړخ ته واپس كيږي.او نه وكيل بالنكاح اړخ ته واپس كيږي.نو دغه ډول په دې ډول كې هم حقوق د عقد وكيل اړخ ته نه واپس كيږي. بلكه موكل اړخ ته واپس كيږي.د قاصد مثال لكه خالد ،حامد شاهد پسې اوليګلو.حامد پيغام اورسولو.چه خالد دا پيغام راكړې دې.چه ما ستا اس په سل روپۍ اخستې دې.او شاهد منظوركړو.نو قاصد يعنې حامد سره به هيڅ حق متعلق نه وي.يعنې دهغه هيڅ ذمه داري نشته. دغه ډول وكيل بالنكاح ذمه دار نه وي .او دغه ډول د اخستلو خرڅولو وكيل هم ذمه دار نه دې.بلكه موكل ذمه دار دې.

| |
|---|
| وَلَنَا أَنَّ الْوَكِيلَ هُوَ الْعَاقِدُ حَقِيقَةً او زمونږ دليل دادې.چه عقد كونكې په حقيقت كې وكيل دې. لِأَنَّ الْعَقْدَ يَقُومُ بِالْكَلَامِ ځكه چې عقد كلام سره قائميږي. وَصِحَّةُ عِبَارَتِهِ لِكَوْنِهِ آدَمِيًّا او دده عبارت صحيح كيدل دده د سړي كيدلو په وجه دي. وَكَذَا حُكْمًا او دغه ډول حكماً، لِأَنَّهُ يَسْتَغْنِي عَنْ إِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى الْمُوَكِّلِ ځكه چې هغه عقد موكل اړخ ته منسوب كاوه نه مستغني دې، وَلَوْ كَانَ سَفِيرًا عَنْهُ اوكه وكيل د موكل د اړخه سفير وو. لَمَا اسْتَغْنَى عَنْ ذَلِكَ نو ددې څخه به نه مستغني كيدلو. كَالرَّسُولِ لكه قاصد ( چې نه مستغني كيږي ). وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ او هركله چې داسې ده. كَانَ أَصِيلًا فِي الْحُقُوقِ نو وكيل په حقوقوكې اصيل شو. فَتَتَعَلَّقُ بِهِ حقوق العقد به نو حقوق د عقد به هم دې سره متعلق وي. وَلِهَذَا قَالَ فِي الْكِتَابِ په دې وجه كتاب كې وائي. [ يُسَلِّمُ الْمَبِيعَ ] چې وكيل مبيع اوسپاري. [ وَيَقْبِضُ الثَّمَنَ ] او ثمن باندې قبضه اوكړي. [ وَيُطَالِبُ بِالثَّمَنِ إِذَا اشْتَرَى ] او كله ئې چې اخستې وي.نو دده څخه به د ثمن مطالبه كولې شي. [ وَيَقْبِضُ الْمَبِيعَ ] او په مبيع باندې قبضه اوكړي |

**وَيُخَاصِمُ فِيهِ** او د عيب په سلسله کې به وکيل سره مخاصمه کولې شي. **وَيُخَاصِمُ فِيهِ**) او وکيل به د عيب په سلسله کې مخاصمه کوي. **لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِنَ الْحُقُوقِ** ځکه چې دا ټولې خبرې د حقوقو څنې دي.

**حل اللغة:** ① **يستغني** بې پرواه کيږي، غيرمحتاج دې ② **يسلم** سپاري، حواله کوي ③ **يطالب** مطالبه کوي ④ **يخاصم** جګړه کوي

**تشريح: دلائل الاحناف** ﷺ زمونږ دليل دادې چه په دې ډول کې عقد کونکې حقيقتاً هم وکيل دې او حکماً هم وکيل دې. حقيقتاً وکيل ځکه عاقد دې چه عقد کلام سره قائم کيږي او کلام کونکې وکيل دې. موکل نه دې نو عقد کونکې وکيل شو. موکل نشو. اود وکيل عبارت يعنې د وکيل کلام صحيح هم دې. خود وکيل کلام صحيح کيدل د دليل په وجه نه دی. بلکه د يوعاقل سړي کيدلو په وجه دی. يعنې د عاقل سړی کيدلو په وجه دده لپاره د ايجاب او قبول اهليت هم موجود دې. نو دا عقدبه د وکيل د اړخه واقع کيږي. اووکيل به عاقد وی. او په دې ډول کې وکيل حکماً عاقد ځکه دې. چه وکيل موکل اړخه د عقد منسوب کاوه نه مستغنې دې. که وکيل د موکل د اړخه صرف سفير او قاصد وو. نو هغه به عقد موکل اړخ ته منسوب کاوه نه مستغنې نه وو. لکه قاصد چې مرسل د اړخ ته د عقد منسوب کاوه نه مستغنې نه دې. او وکيل بالنکاح موکل اړخ ته د عقد نکاح منسوب کاوه نه نه مستغنې کيږي. او هرکله چې داسې ده. يعنې وکيل په دې ډول کې حقيقتاً هم عاقد دې او حکماً هم عاقد دې. نو هغه به دعقد دحقوقو په سلسله کې اصيل وی. او هرکله چې وکيل د عقد حقوقو په سلسله کې اصيل دې. نو حقوق د عقد به هم هغه سره متعلق وی. او هم اړخ ته به واپس کيږي. وکيل د حقوقو په سلسله کې اصيل وی. په دې وجه صاحب دقدوري ﷺ په خپله مختصرالقدوری کې يا امام محمد ﷺ پخپل جامع صغير کې يا مبسوط کې فرمائي. که وکيل بالبيع دې. نو هغه به مبيع مشتري ته حواله کوي. او په ثمن به قبضه کوي. او که وکيل بالشراء دې. د هغه څخه به د ثمن مطالبه کولې شي. او هغه به پخپله بيع باندې قبضه کوي. اوکه وکيل بالبيع دې. او مشتري د مبيع په عيب باندې خبر شو. نو مشتري به ددې عيب په سلسله کې وکيل سره ګفتګو (خبرې اترې) کوي. اوکه وکيل بالشراء دې. او د مبيع په عيب باندې خبر شو. نو ددې عيب په سلسله کې به وکيل سره خبرې کوي. موکل سره به نه کوي.

دليل دادې. چه ذکر شوی واړه شيان د عقد دحقوقو څنې دی. او د عقد ټولو حقوق وکيل اړخ ته واپس کيږي. نو ذکرشوی واړه شيان به وکيل اړخ ته واپس کيږي. او وکيل به ددې ذمه دار وی.

**وَالْمِلْكُ يَثْبُتُ لِلْمُوَكِّلِ خِلَافَةً عَنْهُ** او موکل لپاره د وکيل د ملك نائب کيدل ثابت شو **اعْتِبَارًا لِلتَّوْكِيلِ السَّابِقِ** په تيرشوی توکيل باندې د نظر کاوه په وجه **كَالْعَبْدِ يَتَّهِبُ** لکه چې غلام هبه قبول کړي. **وَيَصْطَادُ** او ښکار اوکړي. **وَيَحْتَطِبُ** او لرګي راجمع کړي. **هُوَ الصَّحِيحُ** هم دا صحيح ده.

**حل اللغة:** ① **السابق** وړاندېنې ② **يتهب** هبه کوي ③ **يصطاد** ښکار کوي ④ **يتحطب** لرې جمع کوي

**تشريح:** په دې عبارت سره د امام شافعي ﷺ د دليل (چې حقوق د حکم تصرف يعنې د ملکيت تابع دی. او حکم يعنې ملکيت موکل سره متعلق کيږي. نو ددې توابع به هم موکل سره متعلق کيږي) ځواب دې. حاصل د ځواب دادې چه د تير شوی توکيل اعتبار کاوه سره موکل لپاره ملك اګرچه ابتداء ثابتيږي. خو اصالة نه ثابتيږي. د وکيل په نيابت سره موکل لپاره ملك ثابتيږي. لنډيز دا چې وکيل د موکل نائب دې. په استفاده کولوکې. او موکل د وکيل نائب دې. د ملك ثابتيدلو په حق کې. بهرحال ملکيت موکل لپاره ابتداءً ثابتيږي. اګرچه اصالةً نه وی. بلکه نيابةً ثابتيږي. نو هرکله چې موکل لپاره اصالةً ملك نه ثابتيږي. نو د ملك تابع به حقوق عقد هم موکل لپاره نه ثابتيږي. او هرکله چې موکل لپاره حقوق نه ثابتيږي. نو وکيل لپاره به ثابتيږي. د ملك د ثبوت په حق کې د وکيل د اړخه موکل نائب کيدل داسې دی. لکه چې غلام هبه قبلوي. او ښکار اولي. او لرګي جمع کوي. يعنې د موهوبه شي، ښکار، او د لرګو مالك ابتداء مولا وی. خو اصالةً نه



وی. بلکه د غلام په نيابت کې مولا ته ملکيت حاصليږي. ځکه چې په دې سبب سره مالك کيدلوکې مولا د غلام قائم مقام دې. دغه ډول د وکيل په نيابت کې موکل لپاره ملکيت حاصليږي.

**الجواب عن دليل الشافعي** ﷺ ﷺ صاحب د فتح القدير او صاحب د عنايه ﷺ د امام شافعي ﷺ د دليل ځواب او وکيل لپاره د عقدحقوق ثابتولو لپاره داسې دليل بيان کړې دې چه د وکيل د تصرف دوې (دوه) جهته دی. ① د وکيل دکلام نه تصرف حاصلول ② په تصرف کې د موکل د اړخه د وکيل نائب کيدل... اوس که مونږ د ړومبې جهت اعتبار کاوه سره ملك اوحقوق دواړه وکيل لپاره ثابت کړو. لکه ځنګه چې د قياس تقاضا ده. نو د موکل دده وکيل به باطل شی. ځکه چې په دې صورت کې به وکيل، وکيل پاتې نشی. بلکه اصل به شی. حالانکه وکيل په تصرف کې د موکل نائب دې. او اصيل نه دې. او که ملك او حقوق دواړه موکل لپاره ثابت کړو. نود عقد لپاره به د وکيل کلام باطل شی. حالانکه عقد د وکيل کلام سره حاصليږي. نو د دواړه جهتونو رعايت کاوه سره مونږ ملك موکل لپاره ثابت کړې دې. ځکه چې په وکيل جوړولو سره ملکيت حاصلول مقصود وی. هم دې اړخ ته مصنف د هدايه ﷺ په «اعتباراً للتوكيل السابق» سره اشاره کړې ده. او حقوق وکيل لپاره ثابت کړې دی. نو ثابته شوه. چه د عقد په دې ړومبی ډول کې حقوق وکيل سره متعلق کيږي. او موکل سره نه متعلق کيږي.

**قَالَ** مصنف ﷺ فرمائي. **وَفِي مَسْأَلَةِ الْعَيْبِ تَفْصِيلٌ** چې دعيب په مسئله کې يو تفصيل دې. **نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى** چې مونږ به ئې انشاءالله ذکرکړو.

**تشريح:** علامه مرغيناني ﷺ فرمائي. چه په مسئله د عيب کې څه قدرې تفصيل دې. چه مونږ به ئې انشاءالله د «باب الوكالة بالبيع والشراء» لاندې بيان کړو.

### د وکيل خپل موکل طرف ته د عقد منسوب کولو سره د حقوقو حکم

**قَالَ وَكُلُّ عَقْدٍ يُضِيفُهُ إِلَى مُوَكِّلِهِ** اوهرهغه عقد چې وکيل ئې خپل موکل اړخ ته منسوب کوي. **كَالنِّكَاحِ وَالْخُلْعِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ** لکه نکاح، خلع، او صلح عن دم العمد. **فَإِنَّ حُقُوقَهُ تَتَعَلَّقُ بِالْمُوَكِّلِ** نو ددې حقوق موکل سره متعلق کيږي **دُونَ الْوَكِيلِ** وکيل سره نه متعلق کيږي.

**تشريح:** دوهم ډول يعنې د کوم عقد حقوق چې موکل سره متعلق کيږي. د هغې لپاره قاعده داده. چه هرهغه عقد د کوم چې وکيل موکل اړخ ته منسوب کاوه نه نه مستغنې کيږي. بلکه موکل اړخ ته منسوب کول ضروري وی. نو د هغې حقوق به موکل سره متعلق کيږي. وکيل سره به نه متعلق کيږي. يعنې د عقد د ټولو حقوقو ذمه دار به موکل وی. او وکيل به ذمه دار نه وی. مثلاً نکاح، خلع وغيره او صلح عن دم العمد ددې حقوق موکل اړخ ته واپس کيږي. وکيل اړخ ته نه واپس کيږي.

**فَلَا يُطَالَبُ وَكِيلُ الزَّوْجِ بِالْمَهْرِ** نود ميړه د وکيل څخه به د مهر مطالبه نشی کيدلې. **وَلَا يَلْزَمُ وَكِيلَ الْمَرْأَةِ تَسْلِيمُهَا** او د ښځې په وکيل به ښځه سپارل نه لازميږي.

**حل اللغة:** ① **لايطالب** مطالبه نشی کولې ② **تسليم** سپارل، حواله کول

**تشريح:** که په عقد نکاح کې څوك سړې د ميړه د اړخه وکيل وی. نود مهر مطالبه به دخاند (موکل) نه کولې شی. د وکيل څخه به نشی کولې. اوکه د ښځې د اړخه وکيل وی. نود ښځې سپارل به وکيل باندې لازم نه وی. بلکه ښځه باندې به پخپله خپل خان سپارل لازم وی. او په عقد خلع کې که د ښځې د اړخه وکيل شو. نود بدل خلع مطالبه به د وکيل نه نه کيږي. بلکه د ښځې څخه به کولې شی. اوکه د ميړه د اړخه وکيل شو. نو د بدل خلع د مطالبې حق به ميړه ته وی. وکيل ته به نه وی. دغه ډول په صلح عن دم العمد کې که د مقتول د اولياؤ د اړخه وکيل شو. نو قاتل څخه به د بدل صلح (قصاص) د مطالبې حق وکيل ته نه وی. بلکه د مقتول اولياؤ ته به وی. اوکه د قاتل د اړخه وکيل شو. نود بدل قصاص مطالبه به د قاتل نه کولې شی. د وکيل څخه

په سنی ټولي، په دې عقود کې حقوق موکل سره ځکه متعلق کیږي، چه په دې عقود کې وکیل صرف سفیر او معبر وی، او سفیر هغه کس ته وائی، څوک چې د بل کلام نقل کړي، او د هغې حکایت اوکړي، او کوم کس چې د بل کلام نقل کوی، هغه باندې د بل کلام احکام نه لازمیږي، لکه مثلاً که خالد د شاهد هغه کلام نقل کړو په کوم کلام سره چې شاهد، حامد باندې تهمت لګولې وو، ددې کلام نقل کاوه په وجه خالد نه قاذف (تهمت لګونکې) شمارلې کیږي، اونه په خالد باندې دقذف احکام (حد قذف وغیره) لازمیږي، نوهم دغه ډول په ذکر شوی عقود کې چونکه وکیل صرف سفیر اود موکل د کلام ناقل دې. په دې وجه د ذکر شوی عقود د احکامو او حقوقو ذمه دار به وکیل نه وی بلکه موکل به وی.

**لِأَنَّ الْوَكِيلَ فِيهَا سَفِيرٌ مَحْضٌ** ځکه چې په دې معاملاتو کې وکیل محض سفیر دې. **أَلَا يُرَى أَنَّهُ لَا يَسْتَغْنِي عَنْ إِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى الْمُوَكِّلِ**، آیا نه ګورې چې وکیل موکل اړخ ته د عقد منسوب کاوه نه مستغني نه دې. **وَلَوْ أَضَافَهُ إِلَى نَفْسِهِ** او که وکیل عقد نکاح خپل خان اړخ ته منسوب کوی **كَانَ النِّكَاحُ لَهُ**. نو نکاح به د وکیل وی. **فَصَارَ كَالرَّسُولِ** نو وکیل د قاصد پشان شو

**تشریح:** او په ذکر شوی عقود کې د وکیل سفیر محض کیدلو دلیل دادې، چه وکل موکل اړخ ته د عقد منسوب کاوه نه مستغني نه دې بلکه دا به وائی، چه زما موکل تا سره نکاح کړې ده. اوکه وکیل نکاح خپل ذات اړخ ته منسوب کړله. مثلاً ښځې ته ئې اووئیل، چه ما تا سره نکاح اوکړله. نودا به د وکیل نکاح وی. د موکل به نه وی. او هرکله چې د وکیل نکاح شوه. نودا د وکالت د حکم نه خارج شو. حالانکه زمونږ کلام په وکالت کې دې. بهرحال هرکله چې په دې قسم کې عقد موکل اړخ ته منسوب کول ضروری دی. او خپل خان اړخ ته د منسوب کاوه اجازت نشته. نو معلومه شوه. چه په دې عقودوکې د وکیل حیثیت صرف د سفیر اود موکل کلام نقل کونکی دې. ددې نه زیات څه حیثیت ئې نه دې. او هرکله چې داخبره ده. نو په دې قسم ثانی کې د وکیل حیثیت داسې دې لکه څنګه چې په ډول اول کې د قاصد حیثیت دې. او د ډول اول لاندې تیر شو. چه د رسالت په صورت کې احکام رسول (قاصد) اړخ ته نه واپس کیږي. بلکه مرسل اړخ ته واپس کیږي. نو دغه ډول په ډول ثانی کې احکام وکیل اړخ ته نه واپس کیږي. بلکه موکل اړخ ته واپس کیږي.

**وَهٰذَا لِأَنَّ الْحُكْمَ فِيهَا لَا يَقْبَلُ الْفَصْلَ عَنِ السَّبَبِ** او دا ځکه چې په دې عقود کې حکم د سبب نه جدائی نه قبلوی.

**حل اللغة:** ① الفصل جدائی ② یقبل قبلوی

**تشریح:** په دې عبارت کې امه مرغینانی رحمه الله د رومبی عقلی دلیل علت بیان کړې دې. ځکه په هدایه کې د علامه مرغینانی رحمه الله دا عادت دې. چه موصوف کله د یو عقلی دلیل نه روسته دوهم عقلی دلیل **وهذا لأن** سره ذکر کوی. چې په دې دوهم ډول کې د وکیل سفیر محض کیدلو علت دادې. چه نکاح وغیره په دوهم ډول عقودکې حکم د سبب نه نه جدا کیږي یعنی داسې نه کیږي. چه نکاح (سبب) منعقد شی. خود خیارشرط په وجه حکم (ملك بضع) میړه لپاره ثابت نشی. لکه څنګه چې په بیع کې کیږي. بلکه سبب (نکاح) سره سره حکم هم ثابتیږي.

**لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ** ځکه چې هغه اسقاط دې. **فَيَتَلَاشَى** نو هغه مضمحل کیږي. **فَلَا يُتَصَوَّرُ صُدُورُهُ مِنْ شَخْصٍ وَثُبُوتُ حُكْمِهِ لِغَيْرِهِ** نو ددې صدور به د یوسړی نه او ددې د حکم ثبوت به د بل سړی نه ممکن نه وی **فَكَانَ سَفِيرًا**. نو وکیل سفیر شو

**حل اللغة:** ① اسقاط ساقطول ② یتلاشی ختمیږی ③ صدور: واقع کیدل، ښکاره کیدل

**تشریح:** او ددې دوهم ډول په عقود کې حکم د سبب نه ځکه نه جدا کیږي. چه په دې عقود کې سبب د اسقاط د قبیلې څنې دې. د عقد خلع او صلح عن دم العمد د اسقاطو د قبیلې څنې کیدل ښکاره دی. په دې طریقه چې میړه په عقد خلع کې د بضع نه خپل ملکیت ساقطوی. او په صلح عن دم العمد کې اولیاء مقتول خپل



حق قصاص ساقطوی. او نکاح د اسقاط د قبیلې څنې ځکه ده. چې د ادم ټولې لونړه یعنی نجونې داصل په اعتبار سره آزادې دی. او د هغوی آزادیدل ددې خبرې تقاضا کوی. چه د نکاح وغیره په وجه ددې هیڅ څوک سړې مالك نه وی. خو شریعت اسلام د نسل د بقاء په خاطر آزادیدلو باوجود د نکاح په وجه په دې باندې یو ډول ملکیت ثابت کړې دې. نو کوم مالکیت چې ښځې لپاره د اصالت په طریقه د حریت په وجه ثابت وو. د نکاح په ذریعه ښځې دا ساقط کړې دې په دې اعتبار سره نکاح هم د اسقاط د قبیلې څنې شوه. دویمه وجه داده. چه په بضع کې اصل حرمت وی. خو نکاح دا حرمت ساقطوی. بهرحال نکاح هم د اسقاط د قبیلې څنې ده. لنډیز داچه ډول ثانی سره متعلق ټولو عقودوکې سبب د اسقاط د قبیلې څنې ده. یعنی ذکر شوې عقد نکاح وغیره د اسقاطاتو د قبیلې څنې ده. او هرکله چې سبب یعنی ذکر شوی عقود د اسقاطاتو د قبیلې څنې دی. او ساقطیدونکې شې انتهائی کمزورې او ختمیدونکې وی. نو په دې ډول ثانی کې به دا ممکن نه وی. چه سبب یعنی عقد اصالة د یو سړی نه صادر شوې وی. او د هغې حکم بل لپاره ثابت وی. او دغه ډول د مسبب اوحکم په منځ کې فصل واقع شی. لکه څنګه چې په ډول اول کې کیږي. ځکه دا خبره جائز نه ده. چه یوځیز د وکیل په حق کې ساقط وی بیا ثانیاً منتقل شی. او دموکل په حق کې ساقط شی. ځکه چې ساقط شوې شې نه واپس کیږي. البته که څه جدید سبب او موندې شی (نو واپس کیدای شی). نو هرکله چې دا خبره ده. نو په ډول ثانی کې د وکیل په واسطه عقد هم د موکل نه صادر کیږي. او حکم به هم موکل لپاره ثابتیږي. او هرکله د عقد (سبب) صدور هم د موکل نه شوې دې. اګرچه د وکیل په واسطه سره شوې دې. او حکم هم د هغه لپاره ثابت شوې دې. نو وکیل صرف سفیر اود موکل د اړخه د کلام نقل کونکې شو. ددې نه زیات د وکیل هیڅ حیثیت نه دې.

### د دوهم قسم مثالونه

**وَالضَّرْبُ الثَّانِي مِنْ أَخَوَاتِهِ** اود دوهم ډول مثالونو څنې **الْعِتْقُ عَلَى مَالٍ وَالْكِتَابَةُ وَالصُّلْحُ عَلَى الْإِنْكَارِ** په مال آزادول، مکاتبت کول، او صلح عن الانکار کول دی.

**تشریح:** د هدایه رحمه الله فرمائی. د ډول ثانی مثالونه ډیرې مسئلې دی. ① خپل غلام دمال په عوض آزادولو لپاره وکیل کول، مثلاً آقا (مالك) یو سړی ته اووائی. چه ته زما غلام د دومره قدرې مال په عوض آزاد کړه. ② خپل غلام سره د مکاتبت کاوه لپاره وکیل کول، مثلاً مولا خپل غلام سره د عقد کتابت کاوه لپاره څوك وکیل کړو. ③ د صلح عن الانکار لپاره وکیل کول، مثلاً مدعی څه دعوه اوکړله. اومدعی علیه ددغه دعوې انکار اوکړو. خو مدعی علیه، مدعی سره د صلح لپاره راضی شو. او د صلح لپاره ئې څوك وکیل کړو.

**فَأَمَّا الصُّلْحُ الَّذِي هُوَ جَارٍ مَجْرَى الْبَيْعِ** بهرحال هغه صلح کومه چې د بیع قائم مقام ده. **فَهُوَ مِنَ الضَّرْبِ الْأَوَّلِ** نوهغه د ډول اول څنې ده

**حل اللغة:** ① جار: جاری ده ② مجری البیع: په ځائې د بیعې

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه صلح عن الاقرار چونکه د بیع قائم مقام وی. ځکه به هغه د ډول اول د قبیلې څنې وی. یعنی په صلح عن الاقرار کې حقوق وکیل سره متعلق کیږي. موکل سره نه متعلق کیږي. او صلح عن الاقرار د بیع قائم مقام ځکه وی. چه په دې کې مبادله د مال بالمال وی. او هرکله چې په صلح عن الاقرار کې مبادله دمال بالمال وی. نو ددې حکم به هم هغه وی. کوم چې د بیع وی. او د بیع حکم هغه دی. کوم چې په ډول اول کې بیان کړې شوې دې. یعنی د عقد حقوق وکیل سره متعلق کیږي.

**وَالْوَكِيلُ بِالْهِبَةِ وَالتَّصَدُّقِ وَالْإِعَارَةِ وَالْإِيدَاعِ وَالرَّهْنِ وَالْإِقْرَاضِ سَفِيرٌ أَيْضًا** اود هبه کاوه دپاره، صدقه کاوه دپاره، عاریة ور کاوه دپاره، د ودیعت په طور ور کاوه دپاره، رهن ایخودلو دپاره، او د پور ور کاوه دپاره،

وکیل هم سفیر دي. لِأَنَّ الْحُكْمَ فِيمَا يَثْبُتُ بِالْقَبْضِ، ځکه چې په دې مسئلوکي حکم د قبضې نه ساقطیږي. وَأَنَّهُ يُلَاقِي مَحَلًّا مَمْلُوكًا لِلْغَيْرِ او قبضه د داسې محل سره یوځائې کوي. کوم چې د بل مملوك دې. فَلَا يُجْعَلُ أَصِيلًا نو وکیل اصیل نشي جوړیدلې.

**حل اللغة:** ① التصدق صدقه کول ② الاعارة: خواست سره یو څیز ورکول ③ الایداع: امانت کیخودل ④ الاقراض: پور ورکول

**تشریح:** ④ هبه د پاره وکیل مقررول، مثلاً څوك سړي یو کس ته اووائي چه ته زما دا غلام فلانی ته هبه کړه. ⑤ د صدقه ور کاوه لپاره وکیل کول، مثلاً یو کس ته اووائي چه ته زما غلام فلانی ته صدقه ورکړه. ⑥ عاريةً ور کاوه لپاره وکیل کول، مثلاً دا اووائي چه ته زما دا کتاب فلانی سړي ته عاريةً ورکړه. ⑦ د ودیعت (امانت) ایخودلو لپاره وکیل کول، مثلاً دا اووائي چه ته زما مال فلانی سره ودیعت کیږده. ⑧ د رهن ایخودلو لپاره وکیل کول، مثلاً دا اووائي چه ته زما دا اس فلانی سره رهن کیږده. ⑨ د پور ور کاوه لپاره وکیل کول، مثلاً دا اووائي چه ته زما دا روپۍ فلانی ته پور ورکړه.

① په دې ټولو مسئلوکي به وکیل سفیر محض وي. او حقوق به موکل اړخ ته واپس کیږي. د ړومبو درې مسئلو دلیل دادې چه دا درې واړه عقدونه د اسقاط د قبیلې ځنې دي. په دې طریقه چې عتق علی مال او مکاتبت کي مولا خپل ملکیت ساقطوي. او په صلح عن الانکار کي مدعی علیه خصومت دفع کوي. او ساقطوي. نو هرکله چې دا درې واړه عقود د اسقاطاتو د قبیلې ځنې دي. نو ددې حکم به د ډول ثانی د عقدونو (نکاح وغیره) پشان وي. یعنی د ډول ثاني پشان به په دې کي هم وکیل سفیرمحض وي. او ددې سره به حقوق نه متعلق کیږي. بلکه موکل سره به متعلق کیږي. او هرکله چې ددې درې واړه مسئلو حکم د ډول ثاني د حکم پشان دې. نو دا مسائل ثلاثه د ډول ثاني مثالونه ګرځول صحیح دي.

② اود پاته شپږو مسئلو دلیل دادې. چه په دې عقود کي حکم محض په قبضه سره ثابتیږي. یعنی د هبه په صورت کي په شئ موهوب باندې د موهوب له قبضه کاوه سره د هبه حکم یعنی د موهوب له مالك کیدل، او د تصرف حق حاصلیدل ثابتیږي. او د صدقه په صورت کي د صدقې په مال باندې د متصدق علیه (چاباندې چې صدقه شوې ده) په قبضه کاوه سره د صدقه حکم یعنی د متصدق علیه ملکیت او حق تصرف حاصلیږي. او د اعاره په صورت کي هرکله مستعیر (عاریت باندې اخستونکي) په شئ مستعار باندې قبضه اوکړي. نو د اعاره حکم یعنی د شئ مستعار نه د نفع اخستلو حق مستعیر لپاره حاصلیږي. او د ودیعت په صورت کي مودع (امین) هرکله په مال ودیعت باندې قبضه اوکړي. نود ودیعت حکم ثابتیږي. یعنی په موّدع باندې د ودیعت د مال ساتنه ضروري کیږي. چه د تعدي نه بغیر که د ودیعت مال هلاك شو. نو په هغه به تاوان لازم نه وي.

③ اود رهن په صورت کي شئ مرهونه باندې د مرتهن په قبضه کاوه سره د رهن حکم مرتهن لپاره ثابتیږي. د رهن حکم دادې. چه مرتهن د شئ مرهونه ساتنه اوکړي. اوکه په رهن سره قرضه وصول نشي. نو مرتهن ته د قاضي په ذریعه د شئ مرهونه نه د پور وصولولو اجازت دې. اود پور ور کاوه په صورت کي مست پور (قرضه اخستونکي) ته په قبضه کاوه سره د پور په مال کي د تصرف اجازت دې. هم دا د پور حکم دې. بهرحال په ذکر شوي عقودو کي حکم په قبضه کاوه سره فوراً ثابتیږي. او قبضه په داسې محل باندې واقع شوه. کوم چې غیروکیل یعنی د موکل مملوك دې. نو ددې عقد حکم به هم په داسې محل کي ثابتیږي. کوم وکیل یعنی د موکل مملوك دې. اوهرکله چې د مذکوره عقودو حکم په داسې محل کي ثابت شوې دې. کوم چې د غیر وکیل یعنی د موکل مملوك دې. نو په دې عقودوکي به وکیل اصیل نه وي. ځکه چې په کوم محل باندې قبضه واقع شوې ده. او د هغې په اعتبار سره وکیل اجنبي دې. او هرکله چې په دې عقودوکي وکیل اصیل نه دې نو هغه سفیر اود مالك (موکل) د اړخه صرف نقل کونکې شو. او هرکله چې وکیل په دې



عقودوکي صرف سفیر او معبر دې. نود عقد حقوق به هم وکیل سره نه متعلق کیږي. بلکه موکل سره به متعلق کیږي. ددې په خلاف هغه عقود کوم چې په کلام سره منعقد کیږي. او په قبضه باندې موقوف نه وي. لکه بیع وغیره، نو وکیل په هغې کي اصیل دې. ځکه چې وکیل په تکلم او کلام کاوه کي اصیل دې. اود وکیل کلام د وکیل مملوك دې. نو هرکله چې د وکیل کلام دهغه مملوك دې. او هغه په کلام کولوکي اصیل دې. او په کلام کولوکي د اصیل کیدلو په وجه په دې عقودوکي اصیل دې. نو ددې عقودو حقوق به وکیل سره متعلق وي. موکل سره به نه وي.

وَكَذَا إِذَا كَانَ الْوَكِيلُ مِنْ جَانِبِ الْمُلْتَمِسِ، او هم دغه ډول که ددې څیزونو غوښتونکي د اړخه وکیل شو. وَكَذَا الشَّرِكَةُ وَالْمُضَارَبَةُ، او دغه ډول شرکت او مضاربت دپاره، إِلَّا أَنَّ التَّوْكِيلَ بِالْإِسْتِقْرَاضِ بَاطِلٌ خود پور غوښتلو لپاره وکیل کول باطل دي حَتَّى لَا يَثْبُتَ الْمِلْكُ لِلْمُوَكِّلِ. تردې چې موکل لپاره به ملك نه ثابتیږي بِخِلَافِ الرِّسَالَةِ فِيهِ. په خلاف د پور اخستلو د قاصد لیګلو.

**حل اللغة:** ① الملتمس: طلب کونکې ② الرسالة پیغام

**تشریح:** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. که هبه، صدقه، عارية، ودیعت (امانت)، رهن، او د پور غوښتونکي د اړخه وکیل وي. نو بیا هم هغه سفیر دې. یعنی په دې صورت کي به هم حقوق موکل سره متعلق وي. وکیل سره به نه وي. البته دومره خبره ضرور ده. چه د پور غوښتلو لپاره وکیل کول باطل دي. یعنی که یوکس بل ته اوونیل. چه ته زما لپاره د فلانی نه پور واخله. او په پور غوښتلوکي ته زما وکیل یې. نودا توکیل باطل دې. ځکه چې په دې صورت کي موکل وکیل ته د بل په مال کي د تصرف امر کړې دې. حالانکه د بل په مال کي د تصرف حکم کول جائز نه دي. دویمه وجه داده. چه قرضه اخستونکې د پور بدل پخپله ذمه لازموي. نو د پور غوښتلو لپاره د وکیل جوړولو مطلب دادې. چه موکل وکیل ته وائي. ته بدل قرض، مثلاً سل روپۍ خپل ځان باندې لازم کړه. او د هغې عوض یعنی مال پور به زما لپاره وي. یعنی پور به زما لپاره وي. اود هغې بدل به په تا باندې لازم وي. دا داسې شوه. لکه چې یوکس بل ته اووائي. چه د فلانی سړي فلانې شئ خرڅ کړه. په دې شرط چې د هغې ثمن به زما لپاره وي. حالانکه دا توکیل بالبیع باطل دې. نو هم په دې باندې قیاس کاوه سره توکیل بالاستقراض هم باطل دې. او هرکله چې د پور غوښتلو لپاره وکیل کول باطل دي. نوکه وکیل پور اوغوښتلو. نو د هغې مالك به موکل نه وي. بلکه وکیل به پخپله وي. اوکه د وکیل نه مال پور هلاك شو. نو هغه به د وکیل مال هلاك وي. د موکل مال به هلاك نه وي. او که د پور لپاره نې څوك قاصد جوړکړو. نو صحیح ده. مثلاً یوسړي بل کس ته اوونیل چه زه فلانی سړي د پور اخستلو لپاره تاله رالیګلې یم. نودا صحیح ده. که م پور (مرسل الیه) قرضه ورکړله. نو د پور غوښتونکي یعنی مرسل لپاره به ملك ثابت شي. علامه مرغیناني فرمائي. که عقد شرکت یا عقد مضاربت لپاره نې څوك وکیل کړو. نو ددې عقد موکل اړخ ته منسوب کول ضروري دي. او د عقد حقوق به موکل اړخ ته واپس کیږي. وکیل اړخ ته به نه واپس کیږي. وکیل به محض سفیر او معبر وي.

### موکل لپاره د مشتري نه د مطالبې کولو حکم

قَالَ (وَإِذَا طَالَبَ الْمُوَكِّلُ الْمُشْتَرِيَ بِالثَّمَنِ) اوکه موکل د مشتري نه د ثمن مطالبه اوکړله. (فَلَهُ أَنْ يَمْنَعَهُ إِيَّاهُ) نو مشتري لپاره موکل د ثمن ور کاوه نه د منع کاوه اختیار شته. لِأَنَّهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْعَقْدِ وَحُقُوقِهِ ځکه چې موکل د عقد او حقوق عقد نه اجنبي دې. لِمَا أَنَّ الْحُقُوقَ إِلَى الْعَاقِدِ ځکه چې حقوق عاقد اړخ ته راجع کیږي.

**تشریح:** که یوسړي څوك وکیل بالبیع مقرر کړو. بیا وکیل په یوکس هغه سامان خرڅ کړو. د کوم د خرڅولو چې وکیل جوړ شوې وو. نو که موکل د مشتري نه د ثمن مطالبه اوکړله. نو مشتري ته دا اختیار شته. چه هغه د ثمن ور کاوه نه انکار اوکړي.

**دليله**⊛ځکه زموږ په نيز حقوق د عقد، عاقد يعني وكيل ارخ ته واپس كيږي اومؤكل د عقد او د حقوق عقد په سلسله كي بالكل اجنبي دي. ځكه به مؤكل ته دمشتري نه د ثمن د مطالبې اجازت نه وي. او هر كله چې مؤكل ته د ثمن د مطالبې اجازت نشته. خو ددې باوجود هغه مطالبه كولې شي. نو مشتري ته حق دې. چه هغه د ثمن ور كاوه نه انكار اوكړي. لكه مثلاً هيڅ څوك به اودس كونكي ته سلام نه كوي. خو كه ددې باوجود چا سلام اوكړو. نو اودس كونكي ( متوضي ) ته حق دې. چه هغه ځواب ورنكړي.

( **فَإِنْ دَفَعَهُ إِلَيْهِ** يا كه مشتري مؤكل ته ثمن وركړو. **جَازَ** نو جائز دې. **وَلَمْ يَكُنْ لِلْوَكِيلِ** او وكيل ته دا اختيار نشته. **أَنْ يُطَالِبَهُ بِهِ ثَانِيًا** ) چې هغه دوباره مشتري نه د ثمن مطالبه اوكړي. **أَنَّ نَفْسَ الثَّمَنِ الْمَقْبُوضِ حَقُّهُ** ځكه چې نفس ثمن په كوم چې مؤكل قبضه كړې ده. د مؤكل حق دې. **وَقَدْ وَصَلَ إِلَيْهِ** او هغه مؤكل ته رسيدلې دې. **وَلَا فَائِدَةَ فِي الْأَخْذِ مِنْهُ ثُمَّ الدَّفْعِ إِلَيْهِ** او د مؤكل نه اخستل او بيا مؤكل ته په ور كاوه كي هيڅ فائده نشته.

**تشريح:** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. كه د مؤكل په مطالبه كاوه مشتري مؤكل ته ثمن وركړو. نودا هم جائز دی. او په دې صورت كي به وكيل لپاره مشتري نه د دوباره ثمن غوښتلو حق نه وي. خودا خيال ساتل پكار دی. كه يوكس بل څوك د عقد تصرف وكيل كړو. نود مؤكل قبضه كول به صحيح نه وي. خو چونكه عقد صرف په قبضه سره جائز كيږي. نو په عقد صرف كي قبضه د ايجاب او قبول په مرتبه كي ده. نوكه د وكيل لپاره قبول حق ثابت وي. اومؤكل قبول كړي. نودا ناجائز دی. دغه ډول كه د قبضه حق وكيل لپاره ثابت وي. او مؤكل قبضه اوكړي. نودا به هم ناجائز وي. اود عقدصرف نه علاوه په نورو بيوع كي د مؤكل د قبضې صحيح كيدلو دليل دادې. چه ثمن په كوم چې مؤكل قبضه كړې ده. د مؤكل حق دې. او هغه مؤكل ته اورسيدلو. او هركله چې داسې ده. نو اوس د مؤكل نه اخستل، او بيا مؤكل ته په ور كاوه كي هيڅ فائده نشته. يعني چې دا حكم وركړې شي. چه مشتري د مؤكل نه واخلي. اووكيل ته وركړي. بيا ئې وكيل مؤكل ته وركړي. په دې كي هيڅ فائده نشته. چه كوم مقصود وو، هغه حاصل شو. يعني مؤكل ته د هغه حق رسيدلې دې. چونكه په كوم ثمن چې مؤكل قبضه كړې ده. هغه هم د مؤكل حق دې.

**وَلِهٰذَا لَوْ كَانَ لِلْمُشْتَرِي عَلَى الْمُوَكِّلِ دَيْنٌ** اوهم په دې وجه كه د مشتري په مؤكل باندې قرضه وي. **يَقَعُ الْمُقَاصَّةُ،** نو مقاصه به واقع كيږي. **وَلَوْ كَانَ لَهُ عَلَيْهِمَا دَيْنٌ** اوكه د مشتري په مؤكل او وكيل دواړو باندې قرضه وي. **يَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِدَيْنِ الْمُوَكِّلِ أَيْضًا** نود مؤكل پور سره به مقاصه واقع كيږي. **دُونَ دَيْنِ الْوَكِيلِ** د وكيل پور سره به نه واقع كيږي.

**تشريح:** په دې وجه كه د مشتري په مؤكل باندې د ثمن په اندازه قرضه وي. نو مقاصه به واقع كيږي. مثلاً د مشتري په ذمه زر روپۍ ثمن دی. اود مشتري په مؤكل باندې زر روپۍ پور دی. نودا به برابر سرابر شي. يعني نه به د مشتري په مؤكل باندې څه وي. اونه به د مؤكل په مشتري باندې څه وي. او مؤكل ته به د وكيل نه د څه ثمن اخستلو حق هم حاصل نه وي. دغه ډول كه د مشتري په مؤكل او وكيل دواړو باندې قرضه وي. نود مؤكل پور سره به مقاصه واقع كيږي. د وكيل پور سره به نه واقع كيږي. مثلاً د مشتري په ذمه زر روپۍ ثمن دی. اود مشتري زر روپۍ مؤكل باندې پور دی. او زر روپۍ په وكيل باندې پور دی. نو زر روپۍ ثمن او هغه زر روپۍ كوم چې په مؤكل باندې پور دې. د هغې په منځ كي به مقاصه واقع كيږي. يعني مؤكل او مشتري دواړه به برابر سرابر وي. نه به د مؤكل په مشتري باندې څه وي. اونه به د مشتري په مؤكل باندې څه وي. او مؤكل ته به د وكيل نه د څه ثمن وغيره اخستلو حق هم نه وي.

② ددې دليل دادې چه مقاصه نوم دې، د ابراء بالعوض. يعني د برى كاوه نوم مقاصه ده. اودا به په ابراء بغيرالعوض باندې قياس كولې شي. نوكه مؤكل او وكيل دواړو په يوځائې مشتري د ثمن نه برى كړو. نو مشتري د مؤكل په برى كاوه سره برى كيږي. د وكيل په برى كاوه سره نه برى كيږي. نو په دې صورت كي به مؤكل ته د وكيل نه د ثمن وغيره اخستلو اجازت نه وي. بهرحال هركله چې په ابراء بغيرالعوض كي د مؤكل



برى كول معتبر دى. د وكيل برى كول معتبر نه دى. نو ابراء بالعوض يعني په مقاصه كي به هم د مؤكل د پور په عوض به ابراء او مقاصه معتبر وي. د وكيل د پور په عوض به معتبر نه وي. ③ دوهم دليل دادې. چې په ذكرشوي صورت كي كه د وكيل پور سره مقاصه اوګرځوو. نو په دې صورت كي به ددې ارتيا راپيښيږي. چه وكيل دخپل ارخه مؤكل ته ثمن اداكړي. اوكه د مؤكل پور سره مقاصه اوګرځوو. نو ددې ارتيا به نه راپيښيږي. نو د مسافه كمولو لپاره د مؤكل پور سره مقاصه اوګرځولې شوه.

**وَيِدَيْنِ الْوَكِيلِ إِذَا كَانَ وَحْدَهُ** اوكه صرف په وكيل باندې قرضه وي. **إِنْ كَانَ يَقَعُ الْمُقَاصَّةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ**(①)نو د طرفينو رحمهما الله په نيز د وكيل پور سره به مقاصه واقع كيږي. **لِمَا أَنَّهُ يَمْلِكُ الْإِبْرَاءَ عَنْهُ عِنْدَهُمَا** ځكه چې د طرفينو رحمهما الله په نيز وكيل مشتري د ثمن نه د برى كاوه مالك دې. **وَلٰكِنَّهُ يَضْمَنُهُ لِلْمُوَكِّلِ فِي الْفَصْلَيْنِ** خو وكيل به په دواړه صورتونو كي مؤكل لپاره د ثمن ضامن وي.

**حل اللغة:** ① الابراء برى كول

**تشريح:** ①د طرفينو رحمهما الله په نيز اوكه د مشتري قرضه صرف په وكيل باندې وي. نو په دې صورت كي د وكيل پور سره مقاصه واقع كيږي. ځكه چې وكيل د طرفينو رحمهما الله په نيز مشتري د ثمن نه بلاعوض د برى كاوه مالك دې. او هركله چې وكيل بلاعوض مشتري د ثمن نه د برى كاوه مالك دې. نود مقاصه يعني د ابراء بالعوض به په درجه اولى مالك وي. نو ابراء بالعوض په ابراء بلاعوض باندې قياس كړې شوې ده. البته دومره خبره ضرور ده. چه وكيل مشتري بلاعوض برى كړي. يا بالعوض برى كړي. په دواړه صورتونو كي به وكيل د خپل مؤكل لپاره. د ثمن د مقدار ضامن وي.

**وجه ملكية ابراء الوكيل المشترى من الثمن**⊛پاتې شوه داخبره چې د طرفينو رحمهما الله په نيز وكيل بلاعوض دمشتري د ثمن نه د برى كاوه مالك ولې دې. نو ددې ځواب دادې. چه د وكيل په حق كي ابراء د قبضې د حق ساقطولو نوم دې. او قبضه خالص د وكيل حق دې. كه مؤكل، وكيل د قبضه كاوه نه منع كول اوغواړي. نو هغه ته به اختيار نه وي. اوكه مؤكل پخپله قبضه كول اوغواړي. نو هغه ته دا حق هم نشته. نو وكيل مشتري د ثمن د قبضې نه برى كولوكي خالص خپل حق ساقطونكې دې. او دخپل حق ساقطولو هر سړي ته اجازت دې. نو وكيل ته د مشتري برى كاوه اجازت دې. او هركله چې وكيل بلاعوض مشتري د برى كاوه مالك دې. نو د بالعوض برى كاوه يعني د مقاصه كاوه حق ساقطولو هرسړي ته اجازت دې. نو وكيل ته د مشتري برى كاوه اجازت دې. او هركله چې وكيل بلاعوض د مشتري برى كاوه مالك دې. نو په بالعوض برى كولو، يعني د مقاصه كاوه به په درجه اولى مالك او مختيار وي.

**وجه تضمين الوكيل للموكل بالثمن**⊛ خوچونكه وكيل د قبضه كاوه حق ساقط كړو. او په دې وجه مؤكل لپاره د ثمن وصولولو دروازه بنده شوه. ځكه چې مؤكل ته د مشتري د ارخه ثمن باندې د قبضه كاوه هيڅ حق نه وي. په دې وجه به وكيل، مؤكل لپاره د ثمن د مقدار ضامن وي. لكه مثلاً كه راهن خپل عبد مرهون آزاد كړي. نو هغه به آزاد وي. ځكه چې عبد مرهون د راهن ملك دې. اګرچه د مرتهن په قبضه كي دې. خو چونكه د غلام په ماليت سره مرتهن لپاره خپله قرضه وصولول ناممكن شو. په دې وجه به راهن مرتهن لپاره د پور د مقدار ضامن وي.

**مذهب ابى يوسف رحمه الله**⊛ په مذكوره مسئله كي حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چه وكيل د مشتري د بلاعوض برى كاوه مالك نه دې. ځكه د مشتري په ذمه چې كوم ثمن دې. هغه د مؤكل ملك دې. نود وكيل مشتري برى كول د غير يعني د مؤكل په ملك كي بې اجازته تصرف كول دى. او بې اجازته د بل په ملك كي

(①) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا فى نتائج الأفكار(٧\٢٤) والدرالمختار(٤\٤٤٨) والخانية (٣\١٥٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٥٠)

تصرف كول جائز نه دي.نود وكيل مشتري برى كول به هم جائز نه وي.لكه د وكيل په ثمن باندې قبضه كول، بيا مشتري ته هبه كول جائز نه دي.بهرحال هركله چې د وكيل لپاره ابراء بلاعوض جائز نه ده.نو ابراء بالعوض يعنى مقاصه به هم په هغې باندې قياس كولو سره جائز نه وي.

## باب الوكالة بالبيع والشراء (فصل في الشراء)

ژباړه: (دا) باب د اخستلو خرڅولو د وكالت (په بيان كي) دې.

رومبې فصل د اخستلو (په بيان كي) دې.

**تشريح: الوجهان لتقديم فصل الشراء على البيع** ⊛ ① په وكالت كې د ټولو نه كثير الوقوع او محتاج اليه شئ وكالت بالبيع والشراء دې.نو د دې احكام وړاندې ذكر شول او شراء سبب د ثبوت ملك دې او بيع د زوال ملك دې او زوال دملك د ثبوت ملك نه روسته واقع كيږي د دې امله د شراء احكام مخكې ذكر كړې شو.او د بيع د وكالت احكام روسته ذكر كړې شوى دي.

② علامه ابن الهمام رحمه الله د،، فصل في الشراء،، د تقديم وجه نه دا بيان كړې ده چې د شراء مسائل هم كثير الوقوع دي.او ددې اړتيا هم زيات راپيښيږي.ځكه چې اكثر خلګ بل كس د خوراك څكاك، او اغوستلو څيزونو د اخستلو لپاره وكيل جوړوي.او د خرڅولو لپاره داسې وكيل نه جوړوي.نود وكالت بالشراء احكام چونكه كثير الوقوع دي.او ددې اړتيا هم زيات راپيښيږي.په دې وجه د وكالت بالشراء احكام د وكالت بالبيع په احكامو باندې مقدم كړې شو.

### وكيل بالشراء ته د جنس او صفت بيانولو حكم

(**قَالَ: وَمَنْ وَكَّلَ رَجُلًا بِشِرَاءِ شَيْءٍ**) وكه يو كس څوك سړې د څه شئ اخستلو لپاره وكيل كړو. **فَلَابُدَّ مِنْ تَسْمِيَةِ جِنْسِهِ وَصِفَتِهِ أَوْ جِنْسِهِ وَمَبْلَغِ ثَمَنِهِ**) نود هغه شئ جنس او صفت، يا د هغې جنس او آخرى قيمت بيانول ضروري دي. **لِيَصِيرَ الْفِعْلُ الْمُوَكَّلُ بِهِ مَعْلُومًا** چې دكوم كار وكيل جوړ كړې شوې دې.هغه معلوم شي. **فَيُمْكِنُهُ الِائْتِمَارُ** اود حكم تعميل ممكن شي.

**حل اللغة:** ① **تسمية**:نوموړ (نامدار) كول،نوم اخستل ② **مبلغ الثمن**:آخرى قيمت

**تشريح:** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.كه يوسړي بل څوك د يو غير معين شئ اخستلو وكيل كړو. نو موكل لپاره ضروري دي.چه دهغه شئ جنس بيان كړي.يعنى دغلام يا وينځې ذكر اوكړي.او دهغې صفت بيان كړي.مثلاً دا اووائي.چه هغه تركي وي.يا هندي وي.وغير ذالك.يا موكل د هغې جنس بيان كړي.او د هغې د ثمن مقدار بيان كړي.مثلاً دا اووائي.چه د پنځه سوه روپو يوغلام واخله.او راوله.موږ د غير معين شئ قيد ځكه لګولې دې.كه د يو معين شئ اخستلو وكيل كړې ئې وي.نود هغې د جنس اوصفت بيانولو هيڅ اړتيا نشته.

**دليله** ⊛ دليل دادې.چه د كوم كار لپاره وكيل جوړ كړې شوې دې.د هغې تكميل هغه وخت ممكن دې.كله چې هغه كار معلوم وي.او هغه كار به په جنس او صفت بيانولو سره يا جنس او د هغې قيمت بيانولو سره معلوميږي.نود هغې جنس او صفت، يا د هغې جنس او قيمت بيانول ضروري دي.

**إِلَّا أَنْ يُوَكِّلَهُ وَكَالَةً عَامَّةً** خودا چې هغه په وكالت عامه سره وكيل كړي. **فَيَقُولَ:** او اووائي. (**ابْتَعْ لِي مَا رَأَيْت**) چې زما لپاره هغه شئ واخله.كوم چې تاته مناسب ښكاري. **لِأَنَّهُ فَوَّضَ الْأَمْرَ إِلَى رَأْيِهِ**،ځكه چې موكل معامله د هغه رائې ته سپارلې ده. **فَأَيَّ شَيْءٍ يَشْتَرِيهِ** نو كوم شئ چې هغه اخلي. **يَكُونُ مُمْتَثِلًا** د حكم تعميل به كړخولې شي.

**حل اللغة:** ① **فوض**:اوسپارل ،حواله كړل ② **ممتثلا**:تعميل كونكې،حكم منونكې



**تشريح:** خو كه دوكالت عامه په طور ئې وكيل كړې وي.مثلاً داسې ئې ونيلي وي.چه كوم شئ مناسب معلوميږي.زما لپاره واخله.او راوړه.نو په دې صورت كښې به نه جنس بيانول ضروري وي.اونه به صفت بيانول ضروري وي.ځكه چې موكل معامله د وكيل رائې ته سپارلې ده.نو وكيل چې كوم شئ اخلي.د موكل د حكم تعميل كونكې به وي.

**وَالْأَصْلُ فِيهِ** او په دې كې قاعده داده. **أَنَّ الْجَهَالَةَ الْيَسِيرَةَ تُتَحَمَّلُ فِي الْوَكَالَةِ كَجَهَالَةِ الْوَصْفِ اسْتِحْسَانًا**، چې په وكالت كي استحساناً معمولى شان جهالت برداشت كولې شي.لكه د وصف مجهول كيدل. **لِأَنَّ مَبْنَى التَّوْكِيلِ عَلَى التَّوْسِعَةِ**،ځكه چې د توكيل مدار په توسع باندې دې. **لِأَنَّهُ اسْتِعَانَةٌ**. ځكه چې وكالت كومك طلب كول دي. **وَفِي اعْتِبَارِ هَذَا الشَّرْطِ بَعْضُ الْحَرَجِ** او ددې شرط اعتبار كاوه كې حرج هم دې. **وَهُوَ مَدْفُوعٌ** اودا شرعاً لرې كړې شوې دې.

**حل اللغة:** ① **اليسيرة**:كم ② **تتحمل**: زغملى (برداشت) كولې شي ③ **التوسعة**:فراخي ④ **استعانة**:مدد غوښتل ⑤ **الحرج**:تكليف،مشقت

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د وكالت د باب په سلسله كې قاعده داده.چه په وكالت كې استحساناً جهالت يسيره ( معمولى جهالت) برداشت كولې شي.يعنى كه څه معمولى شان خبره معلومه شي.نو وكالت صحيح پاتې كيږي.مثلاً وصف مجهول وي.او موكل اووئيل.چه يو غلام واخله.او راوله.نو استحساناً د وصف مجهول كيدلو باوجود به وكالت صحيح وي.اګرچه قياساً صحيح نه وي.او پاتې شو جهالت فاحشه، مثلاً موكل اووئيل.چه يوځاروې واخله او راوله.نودا به په وكالت كې بالكل نشى برداشت كولې.نه قياساً او نه استحساناً. د جهالت يسيره برداشت كولوكې وجه د قياس داده.چه ،،توكيل بالبيع والشراء،،به په نفس بيع او شراء باندې قياس كولې شي.ځكه چې وكيل بالبيع د موكل د اړخه دبائع ښشان وي.او وكيل بالشراء د موكل د اړخه د مشتري ښشان وي.او په بيع او شراء كې جهالت بالكل نه برداشت كيږي.نه جهالت فاحشه،او نه جهالت يسيره.نوهم دغه ډول وكالت بالشراء والبيع كې به هم مطقاً جهالت نه برداشت كيږي.

**وجه الاستحسان** ⊛ وجه د استحسان داده.چه د توكيل مدار په توسع باندې دې.ځكه چې توكيل په حقيقت كې پخپل كار كې د بل نه كومك طلب كول دي.او د جهالت يسيره په اعتبار كاوه كې يو ډول حرج دې.حالانكه شريعت اسلام حرج لرې كړې دې.لكه فرمائي. «لاحرج في الدين» نود حرج لرې كاوه لپاره به وكالت كې جهالت يسيره برداشت كولې شي.

### په مشترك الجنس لفظ سره د وكالت حكم

**ثُمَّ إِنْ كَانَ اللَّفْظُ يَجْمَعُ أَجْنَاسًا** بيا كه داسې لفظ وي.چه ډيرو جنسونو ته شامليږي. **أَوْ مَا هُوَ فِي مَعْنَى الْأَجْنَاسِ** يا يو داسې شئ ته ګډ وي.كوم چې د جنسونو په معنى كې دې. **لَا يَصِحُّ التَّوْكِيلُ وَإِنْ بَيَّنَ الثَّمَنَ**) نو توكيل صحيح نه دې.اګرچه ثمن ئې بيان كړې وي. **لِأَنَّ بِذَلِكَ الثَّمَنِ يُوجَدُ مِنْ كُلِّ جِنْسٍ** ځكه چې ددې ثمن عوض په هرجنس كې موندلې شي. **فَلَا يُدْرَى مُرَادُ الْآمِرِ لِتَفَاحُشِ الْجَهَالَةِ** نود جهالت فاحشه كيدلو په وجه به د موكل مراد معلوم نه وي.

**حل اللغة:** ① **لايدرى**:نه معلوميږي ② **التفاحش**:زياتوالې

**تشريح:** وړاندې بيان شوى دي.كه موكل د هغه شئ جنس، نوع، او وصف بيان كړو.د كوم د اخستلو چې ئې دې وكيل كړې دې.نودا وكالت صحيح دې.اوكه په دې كې ئې يوهم بيان نكړو.بلكه داسې لفظ ئې ذكر كړو.كوم چې ډير جنسونو ته ګډ دې.مثلاً دا ئې اووئيل.چه ته دابه (چوپايه، سا لرونكې) يا كپړه واخله.او راوړه.يا ئې داسې لفظ ذكر كړې دې.كوم چې ډيرو جنسونو ته ګډ نه دې.خو د ډيرو جنسونو په معنى كې

دي مثلاً د كور اخستلو وكيل ني كړو. يا ني د غلام يا وينځي اخستلو وكيل كړو. نودا وكالت به صحيح نه وي. اګرچه ددي شي ثمن ني بيان كړي وي.

دليله⊛دليل دادي چه موكل كوم ثمن بيان كړي دي. د دومره ماليت شي په هرجنس كي موجود دي. مثلاً موكل اوونيل چه د زر روپو د ماليت دابه (چوپايه) واخله، او راوله. نود چوپايه اطلاق په مخكه باندي د تلونكي هر ساه لرونكي (جاندار) باندي كيږي. او په هرجنس كي د زر روپو د ماليت حيوان (څاروي) موجود دي. خكه چي د زر روپو د ماليت غوا هم وي. وزه هم وي. اس هم وي. اوښ هم وي. ميښه هم وي. نو هركله چي په ثمن بيانولو سره جهالت نه لري كيږي. بلكه على حاله پاته دي. نو ددي كثير جهالت په وجه وكيل د موكل په مراد باندي نشي خبريدلي. او هركله چي وكيل د موكل په مراد باندي نشي خبريدلي. نو وكيل به د حكم په تعميل باندي هم قادر نه وي. چونكه په دي صورت كي وكالت نه صحيح كيږي. په دي وجه به ذكرشوي صورت كي توكيل هم صحيح نه وي.

**وَإِنْ كَانَ جِنْسًا يَجْمَعُ أَنْوَاعًا** او كه داسي جنس دي. كوم چي انواع ته جامع دي. **لَا يَصِحُّ إِلَّا بِبَيَانِ الثَّمَنِ أَوِ النَّوْعِ**، نودا توكيل به صحيح نه وي. خود ثمن يا نوع بيانولو سره. **لِأَنَّهُ بِتَقْدِيرِ الثَّمَنِ يَصِيرُ النَّوْعُ مَعْلُومًا**، خكه چي د ثمن اندازه كولو سره نوع معلوميږي. **وَبِذِكْرِ النَّوْعِ تَقِلُّ الْجَهَالَةُ** او په نوع ذكر كاوه سره به جهالت كميږي. **فَلَا تَمْنَعُ الْإِمْتِثَالَ مِثَالُهُ** نودا جهالت به د حكم د تعميل لپاره مانع نه وي.

**حل اللغة:** ① **تقل**: كميږي ② **تمنع**: منع كوي

**تشريح:** اوكه موكل داسي لفظ ذكر كړو. چه ډيرو انواعو ته ګډ وي. مثلاً د غلام اخستلو وكيل ني كړو. يا ني د وينځي اخستلو وكيل كړو. نودا وكالت به هم صحيح نه وي. خو ددي اندازتاً قيمت ني بيان كړو. يا ني ددي نوع بيان كړله. نودا توكيل به صحيح وي. خكه چي په ثمن بيانولو سره نوع معلوميږي. خكه چي په ثمن بيانولو سره نوع معلوميږي. او په نوع ذكر كاوه سره جهالت كميږي. نو هركله چي په نوع ذكر كاوه سره جهالت كم شو. نو وكيل په تعميل د حكم باندي قادر وي. او هركله چي وكيل په تعميل حكم باندي قادر دي. نو په دي صورت كي به وكالت هم صحيح وي.

**مِثَالُهُ: إِذَا وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ أَوْ جَارِيَةٍ** ددي مثال دادي. چه كله ني د يو غلام يا وينځي اخستلو لپاره وكيل كړو. **لَا يَصِحُّ** نو صحيح نه دي. **لِأَنَّهُ يَشْمَلُ أَنْوَاعًا** خكه چي دا ډيرو انواعو ته ګډ دي. **فَإِنْ بَيَّنَ النَّوْعَ كَالتُّرْكِي وَالْحَبَشِي أَوِ الْهِنْدِي أَوِ السِّنْدِي أَوِ الْمُوَلَّدِ جَازَ** نو كه نوع ني بيان كړله لكه مثلاً تركي ، حبشي ، هندي ، سندي ، مولد نو جائز دي. **وَكَذَا إِذَا بَيَّنَ الثَّمَنَ لِمَا ذَكَرْنَاهُ** او هم دغه ډول كله ني چي ثمن بيان كړي وي. د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړي دي.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله ددي په مثال بيانولوكي فرمائي. كه يوسړي بل څوك د غلام يا وينځي اخستلو لپاره وكيل كړو. نو دا وكالت صحيح نه دي. خكه چي لفظ غلام او لفظ وينځه ډيرو انواعو ته ګډ دي. خكه چي غلام او وينځه تركي هم كيداي شي. جبشي هم، هندي هم، سندي هم، او مولد هم. مولد هغه دي. كوم چي په مملكت اسلاميه كي پيدا شوي وي. بعض فرمائي. چه مولد هغه عجمي سړي دي. چا چي په عرب كي پروش موندلي وي. او بعض وائي. چه مولد هغه دي. چه د هغه پلار هندي او مور عربي وي. بهرحال لفظ غلام او لفظ وينځه هركله چي ډيرو انواعو ته ګډ دي. نود جهالت فاحشه په وجه به وكيل په تعميل حكم باندي قادر نه وي. او هركله چي دوكيل لپاره د موكل د حكم تعميل ناممكن دي. نو وكالت صحيح نشو. نو په ذكر شوي صورت كي به هم وكالت صحيح نه وي.

**وَلَوْ بَيَّنَ النَّوْعَ** او كه نوع يا ثمن ني بيان كړو. **أَوِ الثَّمَنَ وَلَمْ يُبَيِّنِ الصِّفَةَ وَالْجَوْدَةَ وَالرَّدَاءَةَ وَالسِّطَةَ** او كره كيدل، ردى كيدل، او منخنى كيدل ني بيان نكړل. **جَازَ** نو هم جائز دي. **لِأَنَّهُ جَهَالَةٌ مُسْتَدْرَكَةٌ**، خكه چي جهالت مستدرك (معمولي



) دي. **وَمُرَادُهُ مِنَ الصِّفَةِ الْمَذْكُورَةِ فِي الْكِتَابِ النَّوْعُ** او په قدوري كي د صفت مذكوره نه د مصنف رحمه الله مراد نوع ده.

**حل اللغة:** ① **الجودة**: كره والي ② **الرداء**: خرابوالي ③ **السطة**: منخنى والي ④ **مستدركة**: معمولي، تلافي ني كيدي شي، پوره والي ني كيدي شي

**تشريح:** البته كه ددي نوع ني بيان كړله. مثلاً دا ني اوونيل چه تركي غلام واخله. او راوله. يا حبشي وغيره، نودا توكيل جائز دي. او دغه ډول كه نوع ني بيان نكړله. خو ددي اندازتاً ثمن ني بيان كړو. نوبيا هم د ذكر دليل په وجه به توكيل صحيح وي. اوكه موكل نوع بيان كړله. يا ني تخميني ثمن بيان كړو. خو ددي كره كيدل، يا ردى كيدل، يا منخنى كيدل ني بيان نكړل. نو بيا هم توكيل جائز دي. خكه چي د جهالت دا مقدار دومره كم دي. چه وكالت كي برداشت كولي شي. اود دومره معمولي جهالت د وكالت په باب كي هيڅ پرواه نه كيږي. نو ددي جهالت باوجود به وكالت صحيح وي.

**المراد من الصفة**⊛ په متن كي د صفت نه د ابو الحسين قدوري رحمه الله نوع مراد ده. اوس به مطلب داوي. چه دوكالت بالشراء لپاره د شي جنس او نوع بيانول ضروري دي. او ددي خبري بيانولو ارتيا خكه راپيښ شو. چه د صاحب قدوري رحمه الله كلام د صاحب هدايه رحمه الله د بيان شوي شرعي قاعدي موافق شي. اود ټولو مشائخو د تصريحاتو موافق شي. خكه چي مشائخو جنس او نوع بيانول ضروري ګرخولي دي.

### د مشترك الجنس لفظ ځيني مثالونه

(**وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ**: او په جامع صغيركي دي. **وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ** كه يوكس بل ته اوونيل. **اشْتَرِ لِي ثَوْبًا أَوْ دَابَّةً أَوْ دَارًا** چي ته زما لپاره كپړه، يا چوپايه (ساه لرونكي ګرځينده)، يا دار (كور) واخله. **فَالْوَكَالَةُ بَاطِلَةٌ) لِلْجَهَالَةِ الْفَاحِشَةِ**، نود جهالت فاحشه په وجه وكالت باطل دي.

**حل اللغة:** ① **ثوب**: جامه ② **دابة**: څاروي ③ **دار**: كور

**تشريح:** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. كه موكل داسي لفظ ذكركړي. كوم چي ډيرو جنسونو ته ګډ وي. نو په جامع صغيركي ددي صورت داسي ذكر دي. كه يوكس بل سړي ته اوونيل. چه ته زما لپاره كپړه واخله. او راوړه. يا چوپايه (سا لرونكي) واخله، او راوله. يا يوكور واخله. نودا وكالت باطل دي. اګرچه موكل تخميني ثمن هم بيان كړي. ددي باوجود كه وكيل واخستلو. نودا اخستل به پخپله د وكيل لپاره وي. موكل لپاره به نه وي.

**فَإِنَّ الدَّابَّةَ فِي حَقِيقَةِ اللُّغَةِ اسْمٌ لِمَا يَدِبُّ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ** خكه چي دابه د حقيقت لغويه په اعتبار سره د هغه شي نوم دي. كوم چي په مځكه باندي ګرځي. **وَفِي الْعُرْفِ يُطْلَقُ عَلَى الْخَيْلِ وَالْحِمَارِ وَالْبَغْلِ** او په عرف كي اس، خر او خچر ته وئيلي شي. **فَقَدْ جَمَعَ أَجْنَاسًا** نو دا لفظ ډيرو جنسونو ته جامع دي.

**حل اللغة:** ① **يدب**: حركت كوي ② **الخيل**: اس ③ **الحمار**: خر ④ **البغل**: قچر

⊛ دليل دادي. چه لفظ دابه (چوپايه)، ثوب، او دار جهالت فاحشه دي. په دي طريقه چي د دابه د لغت په اعتبار سره حقيقي معنى د هغه شي ده. كوم چي په مځكه باندي ګرځي. او په عرف كي د دابه اطلاق په اس، خر، اوخچر باندي كيږي. بهرحال د دابه حقيقي معنى مراد وي. اوكه عرفي مراد وي. په دواړه صورتونو كي لفظ دابه مختلف جنسونو ته ګډ دي. اود يو لفظ مختلف جنسونو ته شامليدل، ددي خبري علامت دي. چه په دي لفظ كي فاحش او كثير جهالت دي.

**وَكَذَا الثَّوْبُ** ادغه ډول كپړه (ډيرو جنسونو ته ګډ دي) **لِأَنَّهُ يَتَنَاوَلُ الْمَلْبُوسَ مِنَ الْأَطْلَسِ إِلَى الْكِسَاءِ** خكه چي دا داعلى كپړي نه واخله، ادنى كپړي پوري هر داسي شي ته ګډ دي. كوم چي اغوستلي شي. **وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ تَسْمِيَتُهُ مَهْرًا** په دي وجه كپړه مهر جوړول صحيح نه دي.

**حل اللغة:** ① الكساء: جامه

**تشریح:** دغه ډول لفظ د ثوب (کپړه) چونکه اطلس (ریښمی کپړې) یعنی د اعلی ډول کپړې نه واخلي، ادنی ډول کپړې پورې هرقسمه د اغوستلو کپړې ته ګډ دې.په دې وجه د ثوب په لفظ کې به هم کثیراو فاحش جهالت وی.هم ددې جهالت فاحشه په وجه کپړه مهر ګرځول صحیح نه دی.یعنی د کپړې په لفظ سره ئې که مهربیان کړو.نودا به معتبر نه وی.بلکه مهر مثل به لازم وی.بهرحال د کپړې لفظ هم چونکه مختلف اجناسو ته ګډ دې.په دې وجه د کپړې په لفظ کې هم جهالت فاحشه دې.

وَكَذَا الدَّارُ تَشْمَلُ مَا هُوَ فِي مَعْنَى الْأَجْنَاسِ او دغه ډول دار (کور) هغه څیزونو ته ګډ دې.کوم چې د اجناس په معنی کې دی. لِأَنَّهَا تَخْتَلِفُ اخْتِلَافًا فَاحِشًا بِاخْتِلَافِ الْأَغْرَاضِ وَالْجِيرَانِ وَالْمَرَافِقِ وَالْمَحَالِّ وَالْبُلْدَانِ ځکه چې دار د مقاصدو، ګاونډیانو، منافعو، محلو،او ښارونو په اعتبار سره ډیر مختلف وی. فَيَتَعَذَّرُ الِامْتِثَالُ نو تعمیل (حکم پوره کول) به متعذر وی.

**حل اللغة:** ① الجیران: جمع د جار ګاونډی ② الاغراض: جمع د غرض، مقصد ③ المرافق: جمع د مرفق، نفع فائده ④ المحال: جمع د محل ،بنګله ⑤ البلدان: جمع د بلد ښار

**تشریح:** دغه ډول لفظ د دار (کور) اګرچه په حقیقت کې مختلف اجناسو ته نه شاملیږی.خو داسې کورونو ته شاملیږی. کوم چې د مختلف اجناسو په معنی کې دی.ځکه چې په کورونو کې د مالیت په اعتبار سره ډیر زیات تفاوت وی.په دې طریقه چې د کورونو مقاصد مختلف وی.مثلاً یوکور د کاروباری دفتر لپاره مناسب دې.خود رهائش (اوسیدلو) لپاره مناسب نه دې.او ددې برعکس، اود ګاونډیانو په اعتبار سره هم کورونه په مالیت کې متفاوت وی.مثلاً یوکور داسې دې.چه د هغې په ګاونډ کې شریف او ښه خلګ آباد دی.او یوکور داسې دې.چه د هغې په ګاونډ کې بې حده چم باز او پلیت قسمه خلګ آباد دی.ددې دواړو کورنو قیمتونه به مختلف وی.د منافعو په اعتبار سره هم کور په مالیت کې متفاوت کیږی.مثلاً یو کور داسې دې.چه په هغې کې لمر هم لګی.او هوا هم، او جمات ته هم نژدې دې.او سړك ته هم نژدې دې.او یو کور داسې دې.چه په هغې کې دا سهولتونه نشته.د محلو په اعتبار سره هم مالیت کې مختلف کیږی.مثلاً یوکور په داسې محله کې واقع دې.چه هلته کې هروخت چټلې او بد بوئی وی.او یوکور په داسې محله کې واقع دې.چه هلته کې د صفائئ ښه معقول انتظام دې.او شهری سهولتونه هم موجود دی.نو په دې دواړو کورنوکې به هم د مالیت په اعتبار سره تفاوت وی.اود ښارونو په اعتبار سره هم د کورونو په مالیت کې تفاوت وی.نو کوم کور چې د دهلي پشان ښار کې وی.نو ددې مالیت به ددې پشان د هغه کور نه ډیر زیات وی.کوم چې د دیوبند پشان ښار کې وی.بهرحال هرکله چې په دې وجوه سره کورونه د مالیت په اعتبار سره متفاوت دی.نو لفظ د دار چونکه هرقسمه دار ته ګډ دې.په دې وجه لفظ د دار اګرچه په حقیقت کې مختلف الاجناس کورونو ته ګډ نه دې.خودا کورونه د مالیت د تفاوت په وجه د مختلف اجناسو په معنی کې ضرور دی.اوهم په دې وجه په لفظ د دار کې جهالت فاحشه دې.او هرکله چې د دابه، ثوب، او دار په الفاظو سره د اخستلو حکم کاوه کې جهالت فاحشه دې.نو ددې جهالت فاحشه په وجه وکیل لپاره د حکم تعمیل کول هم متعذر او ناممکن وی.او هرکله چې وکیل لپاره تعمیل حکم متعذر دې.نودا وکالت به باطل وی.او پاتې شو د ثمن بیانول،نو په دې سره به هم جهالت نه لرې کیږی.ځکه چې ددې ثمن مالیت شئ هر جنس کې موجود دې.او هرکله چې په هرجنس کې د دومره مالیت شئ موجود دې.نو د ثمن په بیانولوکې به وکیل د مؤکل په مراد نه پوهیږی.او هرکله چې وکیل د مؤکل د مراد نه خبر نشو نو هغه به په تعمیل د حکم باندې قادر نه وی.او هرکله چې وکیل په تعمیل د حکم باندې قادر نشو.نود مؤکل د ثمن بیانولو باوجود به وکالت باطل وی.

**د نوع بیانولو سره د وکالت حکم**



(قَالَ: وَإِنْ سَمَّى ثَمَنَ الدَّارِ) وکه مؤکل د دار ثمن بیان کړو. وَوَصَفَ جِنْسَ الدَّارِ وَالثَّوْبِ او د دار او کپړې نوع ئې بیان کړله. جَازَ نو جائز دی.

**تشریح:** امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې فرمائی.که د دار (کور) اخستلو لپاره مؤکل اندازتاً ثمن هم بیان کړو.اود هغې نوع ئې هم بیان کړله.مثلاً دائې اووئیل.چه په فلانئ محله کې تقریباً دلس زره روپو مالیت زما لپاره یو کور واخله.نودا وکالت جائز دې.او هم دغه ډول که د کپړه اخستلو لپاره ئې وکیل کړو.اود کپړې نوع ئې بیان کړو.نو دا توکیل هم جائز دې.دغه ډول که د دابه (چوپایه) اخستلو لپاره ئې وکیل کړو.اود هغې نوع ئې بیان کړله.مثلاً دائې اووئیل.چه زما لپاره یو اس واخله.یا یو خر واخله.نودا توکیل جائز دې.

ددې دلیل دادې.چه د دار، ثوب، او دابه نوع بیانولو سره ددې جهالت یو ډول مرتفع کیږی.او معمولی شان جهالت پاته پاتې کیږی.او وړاندې تیر شوی دی.چه معمولی شان جهالت د وکالت د جواز لپاره مانع نه وی.نو په ذکر شوی صورتونوکې د نوع د بیان نه روسته به وکالت صحیح وی.

مَعْنَاهُ نَوْعُهُ، او دجنس نه مراد نوع دې. وَكَذَا إِذَا سَمَّى نَوْعَ الدَّابَّةِ او که دغه ډول د دار نوع ئې بیان کړله. بِأَنْ قَالَ حِمَارًا أَوْ نَحْوَهُ. په دې طریقه چې وې وئیل.چه هغه خر یا د هغې پشان.

**تشریح:** **المراد من الجنس** په متن کې د جنس نه مراد نوع ده.خادم په ژباړه او تشریح کې د هغې رعایت کړې دې.علامه ابن الهمام د نهایه په حواله سره لیکلی دی.چه دجامع صغیر روایت د مبسوط روایت نه مخالف دې.ځکه چې دمبسوط د روایت مطابق د وکالت د جواز لپاره د کور اندازتاً ثمن بیانولو نه روسته د هغې نوع بیانول ضروری نه دی.بلکه ثمن بیانول کافی دی.اود جامع صغیر د روایت مطابق د دار ثمن بیانول کافی نه دی. بلکه ددې نوع بیانول هم ضروری دی.

**په درهم ورکولو سره د خوراك اخستلو مطلب**

وَمَنْ دَفَعَ إِلَى آخَرَ دَرَاهِمَ که یو سړی بل کس ته دراهم ورکړل. وَقَالَ او وې وئیل. اشْتَرِ لِي بِهَا طَعَامًا چې زما لپاره ددې په عوض خوراك واخله. يَقَعُ عَلَى الْحِنْطَةِ وَدَقِيقِهَا اسْتِحْسَانًا (¹)نودا به استحساناً په غنمو او ددې په اوړو باندې واقع کیږی.

**حل اللغة:** ① الحنطة: غنم ② دقیق: اوړه

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې.که یوسړی بل سړی ته دراهم ورکړل.که دراهم زیات وی.اوکه کم وی.او دائې اووئیل.چه ددې په عوض ما لپاره طعام (خوراك) واخله.نودا وکالت به استحساناً په غنمو او ددې په اوړو باندې واقع کیږی.یعنی وکیل ته به صرف د غنمو یا د اوړو اخستلو اجازت وی.ددې نه علاوه به د بل څه علي اخستلو اجازت نه وی.او د قیاس تقاضا داده.چه وکالت به په هرهغه شئ کې واقع کیږی.کوم چې د غذا په طور خوړلې کیږی.

وَالْقِيَاسُ أَنْ يَقَعَ عَلَى كُلِّ مَطْعُومٍ اعْتِبَارًا لِلْحَقِيقَةِ، اوقیاس دادې.چه د حقیقت اعتبار کاوه سره به په هر مطعوم (دخوراك په څیز) باندې واقع کیږی. كَمَا إِذَا حَلَفَ لَا يَأْكُلُ طَعَامًا لکه څنګه چې د خوراك په ډول کې کیږی. إِذِ الطَّعَامُ اسْمٌ لِمَا يُطْعَمُ ځکه چې طعام د هغه شئ نوم دې.کوم چې خوړلې کیږی.

**تشریح:** وجه د قیاس داده.چه د طعام (خوراك) لفظ هر هغه شئ ته وئیلې شی.کوم چې خوړلې کیږی.نود

---

¹) القول الراجح هو العمل بالعرف اذا امرالموكل الوكيل بشراء مطلق الطعام كذا فى الدرالمختار(٤\٤٤٨) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٥١)

طعام د حقيقت اعتبار كاوه سره به په هر مطعوم باندې وكالت واقع كيږي. لكه مثلاً يوكس دا قسم اوخوړلو چه زه به طعام ( خوراك) نه خورم. نودا سړې به د هر خوراك په خوړلو حانث كيږي. كه غنم وي. او كه د هغې اوړه وي. يا ددې نه علاوه ميوې وغيره څه بل څه شئ وي. نو لكه څنګه چې په يمين كې د طعام لفظ هر مطعوم باندې واقع كيږي. دغه ډول به وكالت كې هم د طعام لفظ هر مطعوم باندې واقع كيږي.

وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ اووجه د استحسان داده. أَنَّ الْعُرْفَ أَمْلَكُ چې عرف زيات قوي او راجح دې. وَهُوَعَلٰى مَاذَكَرْنَاهُ او عرف هم هغه دې. كوم چې موږ ذكر كړو. إِذَاذُكِرَ مَقْرُوْنًا بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ كله چې اخستلو خرڅولو سره يوځائې ذكركړې شي. وَلَاعُرْفَ فِي الْأَكْلِ او په خوراك كې هيڅ عرف نشته. فَبَقِيَ عَلَى الْوَضْعِ نو هغه به په اصل وضع باندې پاتې پاتې وي.

حل اللغة: ① مقرون: مولښتى (پيوست)

تشريح: وجه د استحسان داده. چه د طعام لفظ په ،، يمين على الاكل ،، باندې قياس كاوه سره اګرچه په هر مطعوم باندې ونيلې شي. خو په عرف كې كله چې لفظ د طعام بيع او شراء سره يوځائې اوونيلې شي. مثلاً داسې اوونيلې شي. چه طعام مې واخستلو، يا طعام مې خرڅ كړو. نو هغه وخت د طعام نه غنم او ددې اوړه مراد وي. نو د قياس په اعتبار سره د طعام اطلاق په هر مطعوم باندې كيږي. اود عرف په اعتبار سره صرف په غنمو او ددې په اوړو باندې كيږي. او عرف چونكه د قياس په نسبت اقوى او راجح وي. په دې وجه په عرف باندې عمل كاوه سره به وكالت بالطعام په غنمو او ددې په اوړو باندې واقع كيږي. اود خوراك په سلسله كې چونكه هيڅ عرف نشته. بلكه د خوراك هر لائق شئ خوړلې شي. په دې وجه د خوراك نه خوړلو د قسم په صورت كې به پخپل اصل او حقيقت باندې پاتې پاتې وي. اود هر مطعوم خوړلو سره به حانث كيږي. علامه ابن الهمام رحمه الله ليكلي دي. چه د طعام د بيع او شراء په موقع باندې عرف كې د طعام نه غنم او ددې اوړه مراد كيدل، دا عرف صرف د اهل كوفه دې. څكه چې د اهل كوفه په نيز د غنمو اود اوړو د بازار نوم سوق طعام وو. ګنې د هغوى د علاوه په عرف كې هرمطعوم ته د طعام لفظ ونيلې شي. اود شراء بالطعام وكالت په هرقسمه خوراك باندې واقع كيږي. زموږ په عرف كې هم طعام هر داسې شئ ته ونيلې شي. كوم چې بالفعل د غذا په طور د خوړلو لائق وي. هم په دې فتوى ده.

وَقِيْلَ او ونيلې شوي دي. اِنْ كَثُرَتِ الدَّرَاهِمُ كه دراهم كثير وي. فَعَلَى الْحِنْطَةِ نو وكالت به په غنمو باندې واقع كيږي. وَاِنْ قَلَّتْ او كه كم وي فَعَلَى الْخُبْزِ نو په ډوډئ به واقع كيږي. وَاِنْ كَانَ فِيْمَابَيْنَ ذٰلِكَ او كه منځنى وي. فَعَلَى الدَّقِيْقِ نو په اوړو به واقع كيږي.

حل اللغة: ① الخبز: روټئ

تشريح: علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه بعض حضرات مثلاً فقيه ابوجعفر وائي. كه مؤكل د شراء بالطعام وكيل جوړ كړو او دراهم ئې په زيات مقدار كې ذكركړل. نودا وكالت به په غنمو باندې واقع كيږي. او كه دراهم ئې په كم مقدار كې ذكر كړل. نو وكالت به په روټو باندې واقع كيږي. اوكه منځنى مقدار كې ئې دراهم ذكركړل. نو وكالت به په اوړو باندې واقع كيږي. دا دې واضحه وي. چه د دراهمو د كثرت، قلت، او اوسط فيصله به هم په عرف باندې كيږي. او عرف په هرځائې كې په هره زمانه كې مختلف وي.

### وكيل لپاره د عيب په وجه د واپس كولو حكم

قَالَ وَاِذَااشْتَرَى الْوَكِيْلُ وكه وكيل ( يو څيز) واخستلو. وَقَبَضَ و قبضه ئې كړو. ثُمَّ اطَّلَعَ عَلٰى عَيْبٍ بيا په عيب باندې خبر شو. فَلَهُ اَنْ يَّرُدَّهُ بِالْعَيْبِ مَادَامَ الْمَبِيْعُ فِيْ يَدِهٖ نود هغه لپاره د عيب په وجه دهغې د واپس كاوه اختيار دې. په دې شرط. چې مبيع د هغه په قبضه كې وي. لِاَنَّهٗ مِنْ حُقُوْقِ الْعَقْدِ څكه چې د عيب په وجه مبيع واپس كول د عقد د حقوقو څخه دي. وَهِيَ كُلُّهَا اِلَيْهِ اود عقد واړه حقوق وكيل اړخ ته واپس كيږي.



تشريح: كه وكيل بالشراء، د مؤكل د حكم مطابق څه شئ واخستلو. او په هغې ئې قبضه اوكړله. بيا د مبيع په څه عيب باندې خبر شو. نود دې يو صورت دا دې چې مبيع د وكيل په قبضه كې وي. نو په دې صورت كې وكيل د خيارعيب لاندې د مؤكل د اجازت نه بغير دا مبيع بائع اړخ ته واپس كولې شي. څكه چې د عيب په وجه مبيع واپس كول، د عقد د حقوقو څخه دي. اود عقد واړه حقوق وكيل اړخ ته واپس كيږي. نو وكيل ته به د عيب په وجه بائع اړخ د مبيع واپس كاوه اجازت وي.

فَإِنْ سَلَّمَهٗ اِلَى الْمُوَكِّلِ نو كه وكيل مبيع مؤكل ته اوسپارلو. لَمْ يَرُدَّهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ نو وكيل د عيب په وجه هغه نشي واپس كولې. خود مؤكل په اجازت سره. لِاَنَّهٗ انْتَهٰى حُكْمُ الْوَكَالَةِ څكه چې د وكالت حكم پوره شوي دي. وَلِاَنَّ فِيْهِ اِبْطَالَ يَدِهِ الْحَقِيْقِيَّةِ او څكه چې په واپس كولو كې د مؤكل حقيقى قبضه باطليږي. فَلَايَتَمَكَّنُ مِنْهُ اِلَّا بِاِذْنِهٖ نو وكيل به د مؤكل د اجازت نه بغير په دې باندې قادر نه وي.

حل اللغة: ① الابطال: باطلول ② لايتمكن: قدرت نه لري

تشريح: اوپه دې متن كې د دوهم صورت بيان دې چې وكيل مبيع مؤكل ته سپارلې وي. نو وكيل ته به د مؤكل د اجازت نه بغير بائع اړخ ته د مبيع واپس كاوه اختيار نه وي.

دليله: ① څكه مؤكل ته د مبيع په سپارلو سره د وكالت حكم پوره شوې دې. او هركله چې د وكالت حكم پوره شوې دې. نو وكالت ختم شو. او وكيل يو اجنبى سړې شو. او هركله چې وكيل اجنبى شو. نو هغه ته به د مؤكل د اجازت نه بغير د مبيع واپس كاوه هيڅ اختيار نه وي. ② چې هركله مبيع مؤكل ته اوسپارلې شو. نو په هغې باندې د مؤكل حقيقى قبضه ثابت شوه. اوس كه وكيل دا بائع اړخ ته واپس كوي. نو په دې سره به د مؤكل حقيقى قبضه باطلول لازميږي. حالانكه د قابض د اجازت نه بغير هيڅ سړې ته د هغه د قبضې باطلولو اجازت نشته. نو ثابته شوه. چه په دې صورت كې وكيل ته د مؤكل د اجازت نه بغير بائع اړخ ته د مبيع واپس كاوه اختيار نشته.

وَلِهٰذَاكَانَ خَصْمًالِمَنْ يَّدَّعِيْ فِي الْمُشْتَرِيْ دَعْوٰى په دې وجه وكيل د مؤكل د اړخه سپارلو نه وړاندې د هغه سړي مدعى عليه وي. كوم چې په اخستې شوي شئ كې دعوه كوي. كَالشَّفِيْعِ وَغَيْرِهٖ لكه شفيع وغيره. قَبْلَ التَّسْلِيْمِ اِلَى الْمُوَكِّلِ لَابَعْدَهٗ د سپارلو نه روسته ( به مدعى عليه ) نه وي.

تشريح: چونكه وكيل، مؤكل اړخ ته د مبيع سپارلو نه وړاندې بائع اړخ ته مبيع واپس كولې شي. او د سپارلو نه روسته ئې نشي واپس كولې. په دې وجه كه په اخستې شوي شئ كې يوكس دحق شفعه يا د اسحقاق دعوه اوكړله. نو وكيل به په دې دعوه كې دغه وخت مدعى عليه وي. كله چې وكيل مؤكل اړخ ته مبيع نه وي سپارلې. اوكه وكيل مبيع مؤكل ته حواله كړې وي. نو وكيل به مدعى عليه نه وي. بلكه مؤكل به مدعى عليه وي.

### په عقد صرف او سلم كښې د وكالت حكم

قَالَ (وَيَجُوْزُ التَّوْكِيْلُ بِعَقْدِ الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ) اود عقد صرف او سلم لپاره وكيل كول جائز دي. لِاَنَّهٗ عَقْدٌ يَمْلِكُهٗ بِنَفْسِهٖ څكه دا داسې عقد دې. چه دا مؤكل پخپله كولې شي. فَيَمْلِكُ التَّوْكِيْلَ بِهٖ عَلٰى مَامَرَّ نود حاجت لرې كاوه لپاره به د وكيل كاوه اختيار هم وي. لكه څنګه چې تير شو.

تشريح: ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه د عقد صرف او سلم لپاره وكيل كول جائز دي. يعنى كه يوكس د عقد صرف يا عقد سلم منعقد كاوه څوك وكيل كړو. نو جائز دې.

دليله: مؤكل عقد صرف او عقدسلم پخپله د منعقد كاوه مالك دې. اود باب وكالت په اول كې تير شوي دي. چه انسان كوم عقد پخپله منعقدكولې شي. د اړتيا لرې كاوه لپاره د هغې لپاره بل كس هم وكيل كولې شي. نو هركله چې مؤكل عقد صرف او عقدسلم پخپله منعقد كولې شي. نو ددې لپاره به د وكيل كاوه مالك

هم وي.

وَمُرَادُهُ التَّوْكِيلُ بِالْإِسْلَامِ او د مصنف رحمه الله مراد د عقد سلم کاوه لپاره وکیل کول دي. دُونَ قَبُولِ السَّلَمِ. د عقد سلم قبلولو لپاره وکیل کول نه دي. لِأَنَّ ذٰلِكَ لَا يَجُوزُ. ځکه چې دا توکیل جائز نه دي. فَإِنَّ الْوَكِيلَ يَبِيعُ طَعَامًا فِي ذِمَّتِهِ ځکه چې وکیل به داسې غله خرڅوي. کومه چې دده په ذمه کې وي. عَلَىٰ أَنْ يَكُونَ الثَّمَنُ لِغَيْرِهِ. په دې شرط چې ثمن دده د غیر لپاره وي. وَهٰذَا لَا يَجُوزُ. او دا خبره جائز نه ده.

**تشریح:** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه یو عقدسلم منعقد کول دي. او یو عقد سلم قبلول دي. عقدسلم منعقد کول د رب السلم د اړخه کیږي. او قبلول د مسلم الیه د اړخه کیږي. نو په متن کې د مصنف رحمه الله مراد دا دي. چه د عقد سلم منعقد کاوه لپاره رب السلم وکیل کولې شي. خود عقدسلم قبلولو لپاره د مسلم الیه د اړخه وکیل کول جائز نه دي.

**دلیل عدم الجواز:** د مسلم الیه وکیل به داسې غله خرڅوي. کوم چې به دده په ذمه پور وي. ځکه چې مسلم فیه د مسلم الیه په ذمه کې پور وي. خو کله چې مسلم الیه وکیل مقرر کړو. او هم وکیل عقد سلم قبول کړو. نو مسلم فیه به د وکیل په ذمه کې پور وي. په دې شرط چې ثمن د بل کس یعنې مؤکل لپاره وي. حالانکه دا ناجائز دي. ځکه که څوک سړي خپل مملوکه شی، په دې شرط باندې خرڅ کړي. چه ثمن د بل کس لپاره وي. نودا ناجائز دي. نو هم دغه ډول که دین یعنې مسلم فیه وکیل پخپله ذمه واجب کړي. او ثمن د مؤکل لپاره وي. نودا به هم ناجائز وي.

**الاعتراض:** په اول د باب کې د بیان شوې قاعدې مطابق د مسلم الیه د اړخه د عقد سلم قبلولو لپاره وکیل کول هم ناجائز کیدل پکار وو. ځکه قاعده داده. چه انسان کوم کار پخپله کولې شي. د هغې لپاره وکیل هم جوړولې شي. نو هر کله چې مسلم الیه عقد سلم پخپله قبلولې شي. نود هغې د قبلولو لپاره وکیل کول هم جائز کیدل پکار وو.

**الجواب:** د قیاس تقاضا داده. چه مسلم الیه ته به هم د عقدسلم قبلولو اجازت نه وي. ځکه چې په عقد سلم کې مسلم فیه (مبیع) معدوم کیدلو په وجه عقد سلم ناجائز کیدل پکار وو. خود رسول الله ﷺ د حدیث «أن النبي ﷺ نهى عن بيع ماليس عند الانسان ورخص في السلم» په وجه د فقیرانو حاجت لرې کاوه لپاره خلاف قیاس عقد سلم مشروع کړې شوې دي. او کوم شی، چې خلاف قیاس د نص نه ثابتیږي. هغه په مورد د نص باندې منحصر پاتې کیږي. په دې باندې بل څه قیاس کول نه صحیح کیږي. نو خلاف قیاس مسلم الیه ته د عقد سلم د قبلولو اجازت دي. خو دده لپاره وکیل کول جائز نه دي.

## د قبضې نه وړاندې د وکیل د جدا کیدو حکم

فَإِنْ فَارَقَ الْوَكِيلُ صَاحِبَهُ قَبْلَ الْقَبْضِ نو که وکیل د قبضه نه وړاندې خپل انډیوالان نه جلا شو. بَطَلَ الْعَقْدُ نو عقد به باطل وي. لِوُجُودِ الْاِفْتِرَاقِ مِنْ غَيْرِ قَبْضٍ ځکه چې د قبضه نه بغیر جلا کیدل اوموندې شو.

**تشریح:** که عقد صرف یا عقدسلم کونکې وکیل او دده هغه انډیوال چاچه دده سره عقد صرف یا عقد سلم کړې دې. د قبضه کاوه نه وړاندې دواړه جلا شو. نودا عقد به باطل وي. ځکه چې د عقد صرف صحیح کیدلو شرط دادې. چه په مجلس د عقد کې دواړو عوضونو باندې قبضه متحقق شي. او د عقد سلم صحیح کیدلو شرط دادې. چه په مجلس د عقد کې په راس المال باندې د مسلم الیه قبضه متحقق شي. نو هر کله چې وکیل او دوهم عاقد د قبضه کاوه نه بغیر د مجلس نه جلا شو. نود عقد صرف او عقد سلم صحیح کیدلو شرط اونه موندې شو. او هر کله چې د صحت شرط اونه موندې شو. نو عقد صرف او عقد سلم به باطل وي.

وَلَا يُعْتَبَرُ مُفَارَقَةُ الْمُوَكِّلِ او د مؤکل جداکیدل معتبر نه دي. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِعَاقِدٍ ځکه چې مؤکل عقد کونکې نه دې. وَالْمُسْتَحِقُّ بِالْعَقْدِ قَبْضُ الْعَاقِدِ او د عقد په وجه د قبضه مستحق عاقد وي. وَهُوَ الْوَكِيلُ او هغه وکیل



دې. فَيَصِحُّ قَبْضُهُ وَإِنْ كَانَ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ الْحُقُوقُ نود وکیل قبضه به صحیح وي. اګرچه هغه سره حقوق نه متعلق کیږي. كَالصَّبِيِّ وَالْعَبْدِ الْمَحْجُورِ عَلَيْهِ لکه ماشوم او غیر ماذون غلام.

**حل اللغة:** ① المفارقة: جدا کیدل ② المحجور: بند کړې شوې

**تشریح:** ابو الحسین قدوري رحمه الله فرمائي. چه د قبضه کاوه نه وړاندې به د مجلس عقد نه د مؤکل د جلا کیدلو اعتبار نه کیږي. ځکه چې مؤکل عاقد نه وي. او د عقد په وجه د قبضه مستحق عاقد وي. او عاقد وکیل دې. نو په بدل صرف به د وکیل قبضه صحیح وي. د مؤکل به نه وي. وکیل د هغه خلګو څنې وي. دچا سره چې حقوق د عقد متعلق کیږي. لکه بالغ، عبد ماذون له في التجارة. او که د هغه خلګو څنې وي. دچا سره چې حقوق د عقد نه متعلق کیږي. لکه نابالغ، او عبد غیر ماذون له. او د قبضه مالك عاقد ځکه وي. چه په عقد صرف کې قبضه د عقد، او عبد غیر ماذون له تتمه او تکمله وي. نو دچا نه چې عقد صرف صادر شی. د هغه د اړخه به قبضه هم صحیح وي. او په ذکر شوی صورت کې چونکه عقد صرف د وکیل نه صادر شوې دې. ځکه به قبضه هم د وکیل صحیح وي. او هر کله چې قبضه د وکیل صحیح ده. نو د مجلس عقد څخه به هم دده جداکیدل معتبر وي. د مؤکل جلا کیدل به معتبر نه وي.

بِخِلَافِ الرَّسُولِ په خلاف د قاصدانو. لِأَنَّ الرِّسَالَةَ فِي الْعَقْدِ ځکه چې قاصد کول د عقد کاوه لپاره دي. لَا فِي الْقَبْضِ د قبضه کاوه لپاره نه دي. وَيَنْتَقِلُ كَلَامُهُ إِلَى الْمُرْسِلِ او د قاصد کلام لیګونکی اړخ ته منتقل کیږي. فَصَارَ قَبْضُ الرَّسُولِ قَبْضَ غَيْرِ الْعَاقِدِ نو چونکه د قاصد قبضه کول د غیرعاقد قبضه کول دي. فَلَمْ يَصِحَّ. ځکه به دا قبضه صحیح نه وي.

**تشریح:** ددې په خلاف که یو کس عقد صرف یا عقد سلم منعقد کاوه لپاره څوك قاصد جوړ کړو. نو په بدل صرف باندې د قاصد قبضه کول به صحیح نه وي. نود قاصد په قبضه کولو سره به عقد صرف صحیح نه وي.

**دلیله:** قاصد صرف د عقد منعقد کاوه لپاره مقرر شوې دې. د قبضه کاوه لپاره نه دې مقرر شوې. او هر کله چې دا خبره ده. نود قاصد کلام به مرسل (لیګونکی) اړخ ته منتقل کیږي. او هر کله چې د قاصد کلام مرسل اړخ ته منتقل شو. نو عاقد به مرسل وي. قاصد به نه وي. او هر کله چې عاقد مرسل شو. قاصد نشو. نود عاقد یعنې د مرسل قبضه به صحیح وي. او قاصد کوم چې غیرعاقد دې. د هغه قبضه به صحیح نه وي.

## په مؤکل باندې د وکیل د رجوع کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا دَفَعَ الْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ الثَّمَنَ مِنْ مَالِهِ او که وکیل بالشراء د خپل مال نه ثمن ورکړو. وَقَبَضَ الْمَبِيعَ او په مبیع نې قبضه اوکړله. فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ بِهِ عَلَى الْمُوَكِّلِ نو وکیل لپاره جائز دي. چې هغه د مؤکل نه ثمن واپس واخلي.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې. که وکیل بالشراء د خپل مال نه ثمن اداکړو. او په مبیع باندې نې قبضه اوکړله. نودا ثمن اداکول به د وکیل د اړخه تبرع نه وي. بلکه وکیل ذکر شوې ثمن د مؤکل نه واپس اخستې شي. امام مالك، امام شافعي، او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دي.

لِأَنَّهُ انْعَقَدَتْ بَيْنَهُمَا مُبَادَلَةٌ حُكْمِيَّةٌ ځکه چې د وکیل او مؤکل په منځ کې حکماً مبادله منعقد شوه. وَلِهٰذَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ په دې وجه که وکیل او مؤکل په ثمن کې اختلاف اوکړو. يَتَحَالَفَانِ نو دواړه به قسم خوري. وَيَرُدُّ الْمُوَكِّلُ بِالْعَيْبِ عَلَى الْوَكِيلِ او مؤکل به مبیع د عیب په وجه وکیل ته واپس کوي. وَقَدْ سَلَّمَ الْمُشْتَرِي لِلْمُوَكِّلِ مِنْ جِهَةِ الْوَكِيلِ او د وکیل د اړخه مؤکل ته مبیع سپارلې شوې دې. فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ نو وکیل به د مؤکل نه خپل ثمن واپس اخلي.

**تشریح:** دلیل دادې. چه دا د وکیل او مؤکل په منځ کې حکماً مبادله ده. په دې طریقه چې وکیل د بائع پشان

دي.او موکل د مشتري پشان دي.

**علامتی کون المبادلة حکمیة**⊛ ① اود مبادلہ حکمي علامت دادي.که د وکیل او موکل په منځ کي د ثمن په مقدار کي اختلاف اوشو.نو ددوی دواړو څخه به قسم اخستي شي.او تحالف ( د فریقینو نه قسم اخستل) د مبادلې د خواصو ځني دی.نوکه د بائع او مشتري په منځ کي د ثمن په مقدار کي اختلاف شو.او دواړو سره بینه نه وی.نو د دواړو څخه به قسم اخستلې شي.که یوکس د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نود هغه خلاف به فیصله ورکولې شي.که دواړو قسم اوخوړلو.نو قاضي به دا بیع فسخ کوی.نو په دې صورت کي د دواړو نه قسم اخستل، ددې خبرې علامت دې.چه د وکیل او موکل په منځ کي حکماً مبادلہ منعقد شوې ده.② اوکه موکل د مبیع په څه عیب باندې خبر شو.نو هغه ددې عیب په وجه مبیع وکیل ارخ ته واپس کولې شي.او دعیب په وجه مبیع واپس کول، دا هم د مبادلې د خواصو ځني دي.بهرحال د وکیل او موکل په منځ کي مبادلہ حکمي اوموندې شوه.او ددې مبادلې لاندې وکیل موکل ته مبیع سپارلې دې.نو هرکله چې د مبادلې لاندې وکیل موکل ته مبیع ورکړې دې.نو وکیل ته به د موکل نه د ذکر شوی مبیع د ثمن اخستلو اختیار هم حاصل وی.

> **وَلِأَنَّ الْحُقُوقَ لَمَّا كَانَتْ رَاجِعَةً إِلَيْهِ** او ځکه چې هرکله حقوق وکیل اړخ ته راجع دی. **وَقَدْ عَلِمَهُ الْمُوَكِّلُ** او موکل ددې نه خبر هم دې. **يَكُونُ رَاضِيًا بِدَفْعِهِ مِنْ مَالِهِ** . نو موکل به د وکیل د مال نه په ثمن ور کاوه راضي وی.

**تشریح:** دوهم دلیل دادې.چه وکیل په ثمن ادا کاوه کي متبرع هغه وخت وی.کله چې دا ثمن د موکل د اجازت نه بغیر ادا کړی.حالانکه ثمن د موکل په اجازت سره اداکړې شوی دی.اګرچه د موکل اجازت دلالةً اوموندې شو.اود موکل اجازت دلالةً ځکه اوموندې شو.چه د بیع واړه حقوق وکیل اړخ ته راجع کیږی.او موکل ته ددې علم هم دې.نو هرکله چې د بیع حقوق وکیل اړخ ته راجع کیږی.نو د ثمن مطالبه به هم د وکیل نه کیږی.او هرکله چې د ثمن مطالبه د وکیل نه کیږی.او موکل ته د هغې علم دې.نو ګویا موکل په دې خبره راضي شو.چه وکیل د خپل مال نه ثمن اداکړی.او د موکل په دې خبره راضي کیدل، ګویا د موکل اجازت دې.

**؟** حاصل داچه وکیل د خپل مال نه کوم ثمن اداکړې دې.هغه ئې دموکل په اجازت سره اداکړې دې.او هرکله چې د موکل په اجازت سره ئې اداکړې دې.نو وکیل په موکل باندې تبرع کونکې نه دې.او هرکله چې وکیل تبرع کونکې نه دې.نو ده ته به موکل اړخ ته د رجوع کاوه پوره پوره اختیار حاصل وی.تردې که موکل په ثمن ادا کاوه کي ټال مټول اوکړی.نو وکیل ته خپل ځان سره د مبیع ساتلو ( منع کول) اختیار دې.

### وکیل سره د مبیع هلاکیدو حکم

> **فَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ فِي يَدِهِ قَبْلَ حَبْسِهِ** نوکه د وکیل په قبضه کي مبیع هلاک شو.د وکیل د منع کاوه نه وړاندې **هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُوَكِّلِ بِيَدِهِ** نو دا به د موکل د مال نه هلاك وی. **وَلَمْ يَسْقُطِ الثَّمَنُ** او ثمن به نه ساقطیږی. **لِأَنَّ يَدَهُ كَيَدِ الْمُوَكِّلِ** ځکه چې د وکیل قبضه د موکل د قبضې پشان ده. **فَإِذَا لَمْ يَحْبِسْهُ** نو هرکله چې وکیل دا منع نکړو. **يَصِيرُ الْمُوَكِّلُ قَابِضًا** نو موکل به د وکیل په قبضه سره قابض کیږی.

**تشریح:** ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.که وکیل بالشراء د خپل مال نه ثمن اداکړو.او په بیع ئې قبضه اوکړله.او مبیع د وکیل د قبضې نه هلاك شو.حالانکه وکیل د ثمن په وجه مبیع خپل ځان سره منع کړې ( ساتلې) هم نه وو.نودا مبیع به د موکل د مال نه هلاك وی.یعني د موکل مال تلف شو.د وکیل نشو.تردې چې ثمن به د موکل د ذمې نه نه ساقطیږی.اود وکیل د رجوع حق به باطل نه وی.بلکه وکیل ته به د موکل نه د خپل ورکړې شوی ثمن واپس اخستلو اختیار وی.

**دلیله**⊛ مبیع باندې د وکیل قبضه داسې شوه.لکه د موکل قبضه.نو هرکله چې وکیل د خپل ثمن په وجه



مبیع منع نکړو.نود وکیل په قبضه کاوه سره حکماً موکل قابض شو.او د وکیل په قبضه کي د مبیع هلاکیدل داسې دی.لکه د موکل په قبضه کي هلاکیدل.اود موکل په قبضه کي د هلاکیدلو په صورت کي د وکیل حق رجوع نه ساقطیږی.نو په دې صورت کي هم د وکیل، موکل اړخ ته د رجوع بالثمن اختیار نه ساقطیږی.② علامه بدرالدین عیني رحمه الله په عیني شرح هدایه کي یو دلیل د؛ لیکلې دې.چه مبیع د وکیل په قبضه کي امانت وی.ځکه چې وکیل په مبیع باندې خپل ځان لپاره قبضه نه ده کړې.بلکه دموکل په اجازت سره ئې موکل لپاره قبضه کړې ده.او هرکله چې د موکل په اجازت سره ئې د موکل لپاره قبضه کړې ده.نو دا قبضه به د امانت په طور وی.اود تعدي نه بغیر امانت هلاکیدلو سره امین باندې تاوان نه واجبیږی.ځکه به په دې مسئله کي هم وکیل باندې هیڅ تاوان نه واجبیږی.او هرکله چې د امین کیدلو په وجه وکیل باندې هیڅ تاوان نه واجبیږی.نو وکیل چې کوم ثمن بائع ته ورکړې دې.وکیل هم هغه ثمن د موکل نه واپس اخستې شي.د موکل د ذمې نه هغه ثمن نه ساقطیږی.

### د وکیل ثمن قبض لپاره د مبیع منع کولو حکم

> **وَلَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ الْمُوَكِّلِ** او وکیل ته اختیار دې.چه هغه مبیع منع کړی. **حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ** تردې چې خپل ثمن وصول کړی. **لِمَا بَيَّنَّا** د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړو. **أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْبَائِعِ مِنَ الموكل** چې وکیل د موکل په لاس د خرڅونکي پشان دې.

**حل اللغة:** ① **یحبس**:بندوی ② **یستوفی**:پوره پوره حاصلوی

**تشریح:** دجمهوراحنافو رحمهم الله مذهب دا دې چې د ثمن وصولولو نه مخکي وکیل مبیع خپل ځان سره ساتلې شي.که وکیل بائع ته ثمن ورکړې وی.او که نه وی ورکړې.بهرحال موکل ته د ثمن وصولولو په خاطر وکیل ته د مبیع منع کاوه اجازت دې.

**دلیلهم**⊛ د وکیل او موکل په منځ کي حکماً بیع وی.یعني وکیل بالشراء حکماً بائع وی.او موکل مشتري وی.او په کتاب البیوع کي تیر شوی دی.چه بائع ته د ثمن وصولولو نه وړاندې د مبیع منع کاوه اختیار وی.نو دلته کي به هم وکیل ته ( چې حکماً بائع دې) د ثمن وصولیدلو نه وړاندې د مبیع منع کاوه حق حاصل دې.

> **وَقَالَ زُفَرُ:** او امام زفر رحمه الله فرمائیلي دی. **لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ،** چې دده لپاره دا حق نشته. **لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ صَارَ قَابِضًا بِيَدِهِ** ځکه چې موکل د وکیل په قبضه کاوه سره قابض شوې دې. **فَكَأَنَّهُ سَلَّمَهُ إِلَيْهِ** نو ګویا وکیل مبیع، موکل ته سپارلې دې. **فَيَسْقُطُ حَقُّ الْحَبْسِ** نود منع کاوه حق به ساقط وی.

**مذهب زفر رحمه الله**⊛ حضرت امام زفر رحمه الله فرمائي.چه وکیل ته خپل ځان سره د مبیع ساتلو هیڅ حق حاصل نه دې.امام مالك، امام شافعي ، او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی.(عیني)

**دلیله**⊛ د امام زفر رحمه الله دلیل دادې.چه د وکیل په مبیع باندې قبضه کاوه سره موکل حکماً قابض شوې دې.اوداسې شوه.ګویا وکیل مبیع موکل ته سپارلې دې.او هرکله چې وکیل مبیع موکل ته سپارلې دې.نود هغه حق حبس (ځان سره د ساتلو حق) هم ساقط شو.ځکه که مبیع په حقیقت کي د موکل په قبضه کي راتلو.نو وکیل لپاره به حق حبس هم حاصل نه وو.نو دغه ډول کله چې مبیع حکماً د موکل په قبضه کي واقع شو.نو بیا به هم د وکیل حق حبس ساقط شي.

> **قُلْنَا:** موږ ځواب ورکوو. **هَذَا لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ** چې دا داسې خبره ده.چه ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی. **فَلَا يَكُونُ رَاضِيًا بِسُقُوطِ حَقِّهِ فِي الْحَبْسِ** نو وکیل به د مبیع منع کاوه په سلسله کي پخپل حق ساقطولو باندې راضي نه وی. **عَلَى أَنَّ قَبْضَهُ مَوْقُوفٌ** ددې نه علاوه د وکیل قبضه موقوف ده. **فَيَقَعُ لِلْمُوَكِّلِ إِنْ لَمْ يَحْبِسْهُ** نوکه ده مبیع منع نکړو.نو موکل لپاره به واقع وی. **وَلِنَفْسِهِ عِنْدَ حَبْسِهِ**. او د مبیع ساتلو په صورت کي به خپل ځان لپاره

سره حکماً د ...

شی چې غیراختیاری طور باندې ثابت وی.او د هغې نه بچکیدل ممکن نه وی.هغه شرعاً عفو ګنړلې کیږی.او هغه د عدم (غیر موجود) په حکم کې وی.نو هرکله چې د وکیل په قبضه کاوه سره د مؤکل قابض کیدل د عدم په حکم کې دی.نودا به ددې خبرې دلیل نه وی.چه وکیل پخپل حق حبس ساقطولو باندې راضی دې.او هرکله چې وکیل د خپل حق حبس ساقطولو باندې راضی نه دې.نود وکیل حق حبس به هم نه ساقطیږی.بلکه هغه ته به د ثمن وصولولو پورې د مبیع منع کاوه پوره پوره حق وی.② دوهم ځواب په «(علی أن قبضه..إلخ)» سره ورکوی یعنی مورږ دا خبره نه منو.چه د وکیل په قبضه کاوه سره مؤکل حکماً قابض کیږی.بلکه په ابتداء کې د وکیل قبضه موقوف کیږی.که وکیل مبیع خپل ځان سره اونه ساتلو.نودا قبضه به د مؤکل لپاره واقع وی.اوکه وکیل مبیع خپل ځان سره اوساتلو.نودا قبضه به پخپله وکیل لپاره واقع وی.نو هرکله چې د وکیل قبضه په ابتداء کې موقوف او متردد ده.نو د وکیل په قبضه سره به مؤکل قابض نه وی.او هرکله چې د وکیل په قبضه سره مؤکل قابض نشو.نود وکیل حق حبس به هم ساقط نه وی.

**وکیل مبیع منع که او هلاکه شوه نو د ضمان به په څه وی؟**

| |
|---|
| **فَإِنْ حَبَسَهُ** که وکیل مبیع خان سره اوساتلو. **فَهَلَكَ** بیا دا هلاك شو. **كَانَ مَضْمُونًا** مورږ **ضَمَانَ الرَّهْنِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ** نود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به ضمان د رهن پشان مضمون وی. |

**تشریح:** د حضرت امام ابویوسف رحمه الله په نیز که وکیل بالشراء د مؤکل نه د ثمن وصولولو په خاطر مبیع خپل خان سره اوساتلو.اومبیع د وکیل په قبضه کې هلاك شو.نو مبیع د شیْ مرهونه پشان مضمون وی.یعنی لکه څنګه چې د شیْ مرهونه د هلاکیدلو په صورت کې د قیمت او دین نه کوم کم شی.هغې سره مضمون وی.مثلاً د شیْ مرهونه قیمت پنځوس روپیْ دې.اود مرتهن د راهن په ذمه دین (قرض) شپیته روپیْ دی.نو شیْ مرهونه به قیمت سره مضمون وی.یعنی د پنځوس روپو به مرتهن باندې ضمان واجب وی.او چونکه د مرتهن د راهن په ذمه شپیته روپیْ پور دی.په دې وجه هغې نه پنځوس روپیْ تاوان اوبشکلو نه روسته به مرتهن د راهن نه لس روپیْ واپس اخلی.او که د شیْ مرهونه قیمت شپیته روپیْ وی.او د راهن په ذمه دین پنځوس روپیْ وی.نو شیْ مرهونه به دین سره مضمون وی.یعنی د شیْ مرهونه په تاوان کې به د راهن په ذمه د مرتهن دین ساقطیږی.او راهن ته به د مرتهن نه د زیاتی هیڅ قسمه رقم مطالبې حق نه وی.څکه چې پاته د لس روپو مقدار مرتهن سره امانت دې.اود امانت هیڅ تاوان نه واجبیږی.په دې وجه به مرتهن باندې لس روپیْ تاوان واجب نه وی.

[1]دغه ډول په ذکر شوې مسئله کې د وکیل د قبضې نه د مبیع هلاکیدلو په صورت کې د مبیع د قیمت او ثمن نه کوم کم شی.هغې سره به مضمون وی.مثلاً وکیل بالشراء بائع سره پنځلس روپیْ ثمن باندې معامله کړې ده.اود هلاك شوی مبیع قیمت لس روپیْ دې.نو مبیع به قیمت سره مضمون وی.یعنی د مؤکل په ذمه به وکیل لپاره ثمن یعنی پنځلس روپې واجب وی.او مؤکل لپاره به په وکیل باندې د مبیع تاوان لس روپیْ واجب وی.نود ثمن نه د تاوان لس روپیْ اوبشکلو نه روسته به وکیل د مؤکل نه پنځه روپیْ واپس اخلی.اوکه ثمن لس روپیْ وی.او د مبیع قیمت پنځلس روپیْ وی.نو مبیع به ثمن سره مضمون وی. یعنی د وکیل په مؤکل باندې د لس روپو مقدار ثمن واجب دې.او مؤکل لپاره وکیل باندې د مبیع تاوان، د ثمن مقدار یعنی لس روپیْ واجب دی.نو نه به وکیل،مؤکل اړخ ته څه رجوع کوی.اونه به مؤکل، وکیل اړخ ته څه رجوع کوی.بهرحال دوکیل په قبضه کې د مبیع هلاکیدلو په صورت کې د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به مبیع د شیْ

**تشریح:** اود امام محمد رحمه الله په نیز د مبیع د ضمان پشان مضمون وی.یعنی لکه څنګه چې مبیع د بائع په قبضه کې هلاك شی.نود مشتری د ذمه نه د هغې ثمن ساقطیږی.د مبیع قیمت که د ثمن نه کم وی.اوکه زیات وی.دغه ډول کله چې د وکیل د قبضې نه مبیع هلاك شو.نود مؤکل د ذمه څخه به ثمن ساقطیږی.که د مبیع قیمت د ثمن نه کم وی.اوکه زیات وی.اوهم دا قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دی.

| |
|---|
| **وَضَمَانَ الْغَصْبِ عِنْدَ زُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ** اودامام زفر رحمه الله په نیز به ضمان د غصب پشان مضمون وی. **لِأَنَّهُ مَنَعَهُ بِغَيْرِ حَقٍّ** څکه چې مبیع په ناحقه ردکړې شوې دې. |

**تشریح:** اود امام زفر رحمه الله په نیز د وکیل په قبضه کې د هلاك شوی مبیع ضمان به د غصب پشان مضمون وی.یعنی که مبیع د ذوات الامثال څنې وو.نو په وکیل به د هغې مثل واجب وی.او په مؤکل به ثمن واجب وی.او که د ذوات القیم څنې وو.نو وکیل به د مبیع د قیمت ضامن وی.که د مبیع قیمت زیات وی.اود هغې ثمن کم وی.مثلاً قیمت پنډره روپیْ وی.او ثمن لس روپیْ وی.نو مؤکل به د ثمن نه زیاتی مقدار یعنی پنځه روپیْ د وکیل نه واپس اخلی.اوکه ثمن زیات وی.اوقیمت کم وی.مثلاً ثمن پنځلس روپیْ وی.او قیمت لس روپیْ وی.نود قیمت نه زیاتی مقدار یعنی پنځه روپیْ به وکیل د مؤکل نه واپس اخلی.صدرالشریعة رحمه الله په شرح وقایه کې هم دا تفصیل ذکر کړې دې.اود امام زفر رحمه الله د قول مطابق هم دا تفصیل مناسب دې. ائمه ثلاثه (امام مالك، امام شافعي ، او امام احمد رحمهم الله) هم دضمان بالغصب قائل دی

**دلیله**۞ د حضرت امام زفر رحمه الله دلیل دادې.چه د وکیل خپل خان سره مبیع ساتل،په ناحق طور باندې ساتل دی.څکه پورتنۍ مسئله کې تیرشوی دی.چه د امام زفر رحمه الله په نیز مبیع باندې د وکیل په قبضه کاوه سره مؤکل قابض کیږی.او وکیل ته د مبیع منع کاوه (او ځان سره دساتلو) هیڅ حق حاصل نه دې.نو هرکله چې وکیل ته د مبیع منع کاوه هیڅ حق حاصل نه دې.نو ددې باوجود د وکیل پخل ځان سره مبیع ساتل په ناحق طور ساتل دی.او یو شیْ په ناحق طور باندې اخستل، او هغه منع کول غصب دې.نو وکیل په مبیع منع کاوه کې غاصب شو. او مبیع شیْ مغصوبه شو.نوهرکله چې دا شیْ مغصوبه هلاك شو.نو په وکیل(غاصب) به ضمان غصب واجب وی.یعنی لکه څنګه چې د هلاك شوی شیْ مغصوبه ضمان واجبیږی.دغه ډول به د هغه مبیع ضمان واجب وی. د کوم تفصیل چې د امام زفر رحمه الله د مذهب د بیان لاندې تیر شو.

| |
|---|
| **لَهُمَا** رحمهما الله اود طرفینو دلیل دادې. **أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْبَائِعِ مِنْهُ** چې وکیل د مؤکل په لاس د خرڅونکی په مرتبه کې دې. **فَكَانَ حَبْسُهُ لِاسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ** نود وکیل مبیع خان سره ساتل د ثمن وصولولو لپاره دی. **فَيَسْقُطُ بِهَلَاكِهِ** نود مبیع هلاکیدلو سره به ثمن ساقطیږی. |

**تشریح:** دطرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د وکیل او مؤکل په منځ کې چونکه حکماً عقد بیع منعقد کیږی. څکه به وکیل په منزله د بائع وی.او مؤکل به په منزله د مشتری وی.او بائع ته د خپل ثمن وصولولو لپاره د مبیع منع کاوه حق وی.نود وکیل مبیع منع کول به هم د مؤکل نه د ثمن وصولولو لپاره وی.او مبیع که د بائع سره هلاك شی.نود مشتری د ذمې نه ثمن ساقطیږی.که ثمن د قیمت نه زیات وی.او که کم وی. دغه ډول کله چې مبیع وکیل سره هلاك شو.نود مؤکل د ذمې نه ثمن ساقطیږی.که ثمن د قیمت نه زیات وی.اوکه کم وی.

---

[1]) القول الراجح هوقول الطرفين وقال ابويوسف يضمن ضمان الرهن كذا فى العناية (۳۸\۷) والبحرالرائق (۱۵۶\۷) ومجمع الأنهر(۳۱۹\۳)والخانية (۱۶۲\۳) نقلاً عن القول الراجح (۱۵۱\۲)

بهرحال ددې دليل نه ثابته شوه چه د طرفينو رحمهما الله په نيز وكيل سره هلاك شوې مبيع به د ضمان بيع پشان مضمون وي.

**الاعتراض:** علامه ابن الهمام او صاحب دعنايه رحمهما الله د طرفينو رحمهما الله په ذكر شوي دليل باندې كړې دي. كه واقعي وكيل د بائع په مرتبه كي دې نود مبيع هلاكيدلو په صورت كې په هرصورت كې په ده باندې ضمان واجبيدل پكار وو. كه وكيل مبيع خپل خان سره ساتلو. اوكه نه ساتلو. ځكه (په دواړه صورتونوكي) كه مبيع بائع سره هلاك شي. نو هغه په بائع باندې مضمون وي. يعني د بائع د مال نه هلاك شمارلې كيږي. اګرچه بائع دا نه وي منع كړې. هم دا وجه ده. چه د مشتري د ذمې نه ثمن ساقطيږي. نو هركله چې وكيل د بائع په مرتبه كې دې. نو دده سره د مبيع د هلاكت په صورت كې په ده باندې هم مبيع مضمون كيدل پكار وو. يعني مبيع د وكيل د مال نه هلاكت شمارل پكار وو. كه وكيل دا منع كړې وو. اوكه منع كړې نې نه وو. حالانكه وړاندې ونيلي شوي دي. كه وكيل مبيع نه وي منع كړې. او هغه دده سره هلاك شو. نودا به د موكل د مال نه هلاك وي. يعني د موكل د ذمې ځخه به ثمن ساقط نه وي؟

**الجواب:** بيا نې ځواب دا كړې دې چې هركله وكيل خپل خان سره مبيع اوساتلو. نودا خبره متعين شوه. چه وكيل به مبيع باندې خپل خان لپاره قبضه كړې وه. او هركله چې وكيل په مبيع باندې خپل خان لپاره قبضه كړې وه. نو دده بائع كيدل يقيني شو. او هركله چې د وكيل بائع كيدل يقيني شو. نود مبيع هلاكيدلو په صورت كې به وكيل باندې يقيناً ضمان لازم وي. يعني د موكل د ذمې ځخه به ثمن ساقطيږي. او هركله چې وكيل خپل خان سره مبيع اونه ساتلو. نود وكيل قبضه كول به د موكل لپاره وي. او وكيل به د قاصد مشابه وي. او دده سره د مبيع هلاكيدل به د امانت هلاكيدل وي. او د امانت په هلاكيدلو سره امين باندې ضمان نه واجبيږي. نو ددې مبيع ضمان به په وكيل باندې واجب نه وي. بلكه په موكل به واجب وي. يعني د موكل د مال ځخه به هلاك وي. اود موكل د ذمې ځخه به ثمن ساقط نه وي.

| |
|---|
| وَلِأَبِي يُوسُفَ اود ابويوسف رحمه الله دليل دادې أَنَّهُ مَضْمُونٌ بِالْحَبْسِ لِلِاسْتِيفَاءِ بَعْدَ أَنْ لَمْ يَكُنْ چې مبيع د خپل مال وصولولو لپاره د منع كاوه په وجه مضمون دې. حالانكه اوسه پورې مضمون نه وو. وَهُوَ الرَّهْنُ بِعَيْنِهِ او بعينه هم دا معنى د رهن ده. بِخِلَافِ الْمَبِيعِ په خلاف د مبيع. لِأَنَّ الْبَيْعَ يَنْفَسِخُ بِهَلَاكِهِ ځكه چې بيع د مبيع په هلاكيدلو سره فسخ كيږي. وَهَاهُنَا لَا يَنْفَسِخُ أَصْلُ الْعَقْدِ او دلته كې اصل عقد نه فسخ كيږي. |

**تشريح:** دحضرت امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې چه د وكيل په قبضه كې هلاك شوې مبيع د موكل نه د ثمن وصولولو لپاره د منع كاوه په وجه مضمون شوې دې. ځكه چې د منع كاوه نه وړاندې مضمون نه وو. لكه ځنګه چې وړاندې تير شوي دي. چه د منع كاوه نه وړاندې كه مبيع د وكيل په قبضه كې هلاك شي. نو هغه د موكل د مال نه هلاكيږي. او وكيل باندې د هغې ضمان نه راځي. بهرحال د ثمن وصولولو په خاطر د وكيل خپل خان سره د مبيع ساتلو په وجه مبيع مضمون شوې دې. او بعينه هم دا د رهن معنى ده. يعني لكه ځنګه چې د پور وصولولو لپاره مرتهن شئ مرهون خپل خان سره ساتي. دغه ډول د ثمن وصولولو لپاره وكيل مبيع خپل خان سره ساتي. حاصل داچه هلاك شوې مبيع د شئ مرهونه پشان دې. نودا مبيع به د ضمان رهن پشان مضمون وي. او د ضمان رهن پوره تفصيل د امام ابويوسف رحمه الله د مذهب لاندې تيرشوي دي.

علامه مرغيناني رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله د اړخه د طرفينو رحمهما الله مذهب ردكولو كې فرمائي. ① چې وكيل سره هلاك شوې مبيع د عقد بيع د مبيع پشان نه دې. ځكه چې د عقد بيع په صورت كې كه مبيع بائع سره هلاك شي. نو عقد بيع فسخ كيږي. اوكه وكيل بالشراء سره مبيع هلاك شي. نو اصل عقد يعني هغه عقد كوم چې د بائع او وكيل بالشراء په منځ كې منعقد شوې وو. نه فسخ كيږي. ② دوهم مستدل دادې. چه د عقد بيع په صورت كې كه بائع مبيع خپل خان سره اونه ساتي. بلكه د منع كاوه نه وړاندې مبيع د بائع سره هلاك شي. نو هغه د نفس عقد په وجه مضمون وي. يعني د بائع د مال نه هلاكيږي. اوكه د وكيل بالشراء د



منع كاوه نه وړاندې مبيع د هغه نه هلاك شي. نو هغه مضمون نه وي. يعني په وكيل باندې د هغې ضمان نه راځي. بهرحال كله چې وكيل بالشراء سره هلاك شوې مبيع د عقد بيع د مبيع پشان نه دې. نو وكيل سره هلاك شوې مبيع د ضمان بيع پشان ځنګه مضمون كيداې شي.

| |
|---|
| قُلْنَا: موږ ځواب وركوو. يَنْفَسِخُ فِي حَقِّ الْمُوَكِّلِ وَالْوَكِيلِ، چې د موكل او د وكيل په حق كې عقد فسخ كيږي. كَمَا إِذَا رَدَّهُ الْمُوَكِّلُ بِعَيْبٍ لكه چې كله موكل دا د عيب په وجه واپس كړي. وَرَضِيَ الْوَكِيلُ بِهِ او وكيل په دې باندې راضي شي. |

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله د طرفينو رحمهما الله د اړخه د امام ابويوسف رحمه الله د پيش كړې شوي وجه د توپير په سلسله كې د ړومبى دليل په ځواب وركاوه كې ارشاد فرمائي. چه وكيل سره د مبيع هلاكيدلو په صورت كې اګرچه وكيل او دده د بائع په منځ كې عقد نه فسخ كيږي. خود وكيل او دده د موكل په منځ كې فسخ كيږي. لكه مثلاً كه موكل مبيع باندې د قبضه كاوه نه روسته د مبيع په څه عيب باندې خبر شو. اود عيب په وجه نې مبيع وكيل ته واپس كړو. او وكيل په دغه عيب باندې راضي شو. نو دا بيع به په وكيل باندې لازم وي. اود وكيل او موكل په منځ كې به بيع فسخ شي. اګرچه د وكيل او بائع په منځ كې فسخ نشو. بهرحال هركله چې د عقد بيع په صورت كې هم بائع سره د مبيع هلاكيدلو په صورت كې عقد فسخ كيږي. او وكيل بالشراء سره د هلاكيدلو په صورت كې هم د وكيل او موكل په منځ كې عقد فسخ كيږي. نو په دواړو كې مماثلت اوموندې شو. او هركله چې مماثلت اوموندې شو. نو وكيل سره هلاك شوې مبيع به د ضمان بيع پشان مضمون وي. لكه ځنګه چې د طرفينو رحمهما الله مذهب دې.

### د يو درهم لس رطله غوښه اخستلو لپاره وكيل جوړول

| |
|---|
| قَالَ وَإِذَا وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَشَرَةِ أَرْطَالِ لَحْمٍ بِدِرْهَمٍ او كه يو سړي چا د يو درهم په عوض د لس رطله غوښې اخستلو وكيل كړو. فَاشْتَرَى عِشْرِينَ رِطْلًا بِدِرْهَمٍ مِنْ لَحْمٍ يُبَاعُ مِنْهُ عَشَرَةُ أَرْطَالٍ بِدِرْهَمٍ بيا وكيل د يو درهم په عوض شل رطله داسې غوښه واخستله. چه د يو درهم په عوض لس رطله خرځيږي. لَزِمَ الْمُوَكِّلَ مِنْهُ عَشَرَةٌ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز موكل باندې په دې كې د نصف درهم په عوض لس رطله غوښه لازم وي. وَقَالَا او صاحبين رحمهما الله فرمائي. يَلْزَمُهُ الْعِشْرُونَ بِدِرْهَمٍ چې د يو درهم په عوض به شل رطله غوښه لازم وي. |

**حل اللغة:** ① **ارطال:** جمع د رطل، يو خاص پيمانه ده ② **لحم:** غوښه

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې. كه يوسړي بل كس د يو درهم په عوض دلس رطله غوښې اخستلو وكيل كړو. نوهغه نوهغه داسې غټه او تازه غوښه واخستله چې د يو درهم به لس رطله خرځيږي. خو وكيل پخپل لياقت سره د يو درهم شل رطله اخستې ده. نوپه دې صورت كې اختلاف دې.

① حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي. چه د نيم درهم په عوض د لس رطله غوښې اخستل په موكل باندې لازم او نافذ كيږي. او د لس رطله اخستل به وكيل باندې نافذ وي.

**دليله:** موكل وكيل ته د لس رطله غوښې اخستلو حكم كړې دې. او ددې نه د زياتى حكم نې نه دې كړې. او د موكل خيال وو. چه لس رطله غوښه به د يو درهم په عوض كې ملاؤ شي. خود هغه د ګمان خلاف مطلوبه لس رطله غوښه په نصف درهم كې ملاؤ شوه. او وكيل د موكل د حكم مخالفت اوكړو. د لس رطله غوښې په ځائې نې شل رطله غوښه واخستله. نود لس رطله غوښې اخستل چونكه د موكل د حكم مطابق دى. په دې

---

[1] القول الراجح هوهذا قول الإمام رحمه الله كذا فى كنز (٢٦٩) وتنوير الأبصار (٤٤٩\٤) ونتائج الأفكار (٣٩\٧) نقلاً عن القول الراجح (١٥٣\٢)

وجه به ددې نفاذ موکل باندې وی.او د لس رطله زیاتی اخستل چونکه د موکل د حکم خلاف دی.په دې وجه به ددې نفاذ به پخپله په وکیل باندې وی.په موکل به نه وی.

**مذهب الصاحبين** رحمهما الله ⊛ په پورتنۍ مسئله کي صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه د پوره شل رطله اخستل به د یو درهم په عوض موکل باندې لازم اونافذ وی.

| |
|---|
| **وَذَكَرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ قَوْلَ مُحَمَّدٍ مَعَ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ** او په بعض نسخوکي د امام محمد رحمه الله قول امام ابوحنیفه رحمه الله سره ذکر دی. **وَمُحَمَّدٌ لَمْ يَذْكُرِ الْخِلَافَ فِي الْأَصْلِ** او پخپله امام محمد رحمه الله په مبسوط کي اختلاف نه دی ذکر کړی. |

**تشريح: اختلاف النسخ** ⊛ خوعلامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د قدوری رحمه الله په بعض نسخوکي د امام محمد رحمه الله قول امام ابوحنیفه رحمه الله سره ذکر دی.امام ابویوسف رحمه الله سره نه دی ذکرشوی.او پخپله امام محمد رحمه الله د مبسوط په کتاب الوکالت کي هیڅ اختلاف نه دی ذکرکړی.خود قدوری د نسخو په اعتبارسره چې هرکله د امام محمد رحمه الله قول مضطرب دی.نو اصلی اختلاف د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په منځ کي پاته پاتي شو.ددې رعایت ساتلو سره

| |
|---|
| **لِأَبِي يُوسُفَ** د امام ابویوسف دلیل دادی. **أَنَّهُ أَمَرَهُ بِصَرْفِ الدِّرْهَمِ فِي اللَّحْمِ** چې موکل وکیل د یو درهم غوښې اخستلو په سلسله کي د عقد صرف کاوه حکم کړی دی. **وَظَنَّ أَنَّ سِعْرَهُ عَشَرَةُ أَرْطَالٍ**،او دا خیال ئې اوکړو.چه د غوښې نرخ لس رطله دی. **فَإِذَا اشْتَرَى بِهِ عِشْرِينَ** نو هرکله چې وکیل د یو درهم په عوض لس رطله غوښه واخستله. **فَقَدْ زَادَهُ خَيْرًا** نو وکیل موکل لپاره د ښه والی اضافه اوکړله. **وَصَارَ كَمَا إِذَا وَكَّلَهُ بِبَيْعِ عَبْدِهِ بِأَلْفٍ** او دا داسې شوه.لکه چې ده خپل غلام په زر درهم د خرڅولوکي وکیل کړی وو. **فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْنِ**. خو ده هغه د دوې (دوه) زره درهمو په عوض خرڅ کړو. **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادی. **أَنَّهُ أَمَرَهُ بِشِرَاءِ عَشَرَةِ أَرْطَالٍ** چې موکل وکیل د لس رطله غوښې اخستلو حکم ورکړی وو. **وَلَمْ يَأْمُرْهُ بِشِرَاءِ الزِّيَادَةِ** او د زیاتی حکم ئې ورکړی نه وو. **فَيَنْفُذُ شِرَاؤُهَا عَلَيْهِ** نو د زیاتی اخستل به په وکیل باندې نافذ وی. **وَشِرَاءُ الْعَشَرَةِ عَلَى الْمُوَكِّلِ** او لس رطله به په موکل باندې نافذ وی. |

**تشريح: دليل ابی یوسف** رحمه الله ⊛ موکل د غوښې اخستلو په سلسله کي وکیل ته د یو درهم خرچ کاوه حکم ورکړی دی.یعنی د موکل مقصد داوو.چه وکیل د یو درهم غوښه واخلی.او راوړی.او خیال ئې دا وو.چه د یو درهم په عوض به لس رطله غوښه راځی.په دې وجه د یو درهم په عوض لس رطله غوښه اخستلو وکیل ئې جوړکړو.خو وکیل د یو درهم په عوض شل رطله غوښه واخستله.نو په دې سره وکیل د موکل په حق کي فائده رسولې ده.یعنی په داسې کاوه سره وکیل د موکل په دې حکم کي مخالفت نه دې کړی.بلکه د موکل خیال د نفس الامر خلاف اوختلو.او هرکله چې وکیل د موکل ددې حکم مخالفت نه دې کړی.بلکه د موکل د عمل مطابق ئې عمل کړی دی.نود وکیل پوره اخستل به د یو درهم په عوض (شل رطله) موکل باندې لازم او نافذ وی.او دا داسې شوه.لکه چې یوسړی خپل غلام د یو زر درهم په عوض خرڅولو څوك وکیل کړلو.خو وکیل دا د دوې (دوه) زره درهمو په عوض خرڅ کړو.نودا خرڅول بالاتفاق د موکل په حق کي جائز دی.څکه چې دلته کي هم د موکل مقصد یو زر درهم حاصلول نه دی.بلکه غلام خرڅول مقصود دی.البته د موکل خیال دا وو.چه دا غلام د یو زر درهم مالیت دې.حالانکه د موکل دا خیال د نفس الامر مطابق نه وو.نولکه څنګه چې دلته کي دا بیع د دوې (دوه) زره درهمو په عوض موکل باندې نافذ کیږی.دغه ډول د متن په مسئله کي شل رطله غوښه د یو درهم په عوض موکل باندې لازم وی.



| |
|---|
| **بِخِلَافِ مَا اسْتَشْهَدَ بِهِ** په خلاف د هغه مسئلې دکوم نه چې امام ابویوسف رحمه الله استشهاد (استدلال) کړی دی. **لِأَنَّ الزِّيَادَةَ هُنَاكَ بَدَلُ مِلْكِ الْمُوَكِّلِ** څکه چې دلته کي زیاتوالې د موکل د ملك بدل دی. **فَيَكُونُ لَهُ** نو زیاتوالې به هم موکل لپاره وی. **بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَى مَا يُسَاوِي عِشْرِينَ رِطْلًا بِدِرْهَمٍ** په خلا ف ددې کله ئې چې د یو درهم په عوض شل رطله داسې غوښه اخستې وی.کومه چې د یو درهم په عوض د هغې د شل رطله برابر ده. **حَيْثُ يَصِيرُ مُشْتَرِيًا لِنَفْسِهِ بِالْإِجْمَاعِ** نو وکیل به بالاجماع خپل ځان لپاره اخستونکې وی. **لِأَنَّ الْأَمْرَ يَتَنَاوَلُ السَّمِينَ** څکه چې د موکل حکم غټې او تازه غوښې ته ګډ دی. **وَهَذَا مَهْزُولٌ** اودا کمزورې غوښه ده. **فَلَمْ يَحْصُلْ مَقْصُودُ الْآمِرِ** نود آمر مقصود به نه حاصلیږی. |

**حل اللغة:** ① **يساوى**:برابریږی ② **السمن**:غوړی ③ **مهزول**:کمزورې،تپ

**تشريح:** دې عبارت سره د امام ابویوسف رحمه الله د تمثیل ځواب دی.حاصل د ځواب دادی.چه هرکله یو سړی د زر روپو په عوض د خپل غلام خرڅولو وکیل کړو.خو وکیل هغه د دوې (دوه) زره روپو په عوض خرڅ کړو.نو زر روپۍ زیاتی به موکل لپاره څکه وی.چه زر روپۍ د موکل د ملك بدل دی.نودا به هم موکل لپاره ملك وی.او وکیل به ددې زیاتی روپو مستحق نه وی.

علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.که وکیل د یو درهم په عوض شل رطله داسې غوښه واخستله.کوم چې په عامه توګه (عام طور) په دې نرخ خرڅیږی.نو په دې صورت کي به بالاجماع ددې غوښې خپل ځان لپاره اخستونکې وی.څکه چې په دې صورت کي وکیل د موکل د حکم مخالفت کړی دی.په دې طریقه چې د موکل حکم داسې غټې تازه غوښې ته ګډ وو.کومه چې د یو رطل په عوض شل رطله خرڅیږی.خوده داسې بې کاره غوښه اخستې ده.کومه چې د یو درهم شل رطله خرڅیږی.نو په دې صورت کي د موکل مقصد حاصل نشو.او هرکله چې د موکل مقصود حاصل نشو.نودا اخستل به موکل باندې نافذ نه وی.بلکه په وکیل به نافذ وی.؛

## د معین څیز اخستلو وکیل جوړول

| |
|---|
| **قَالَ وَلَوْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ شَيْءٍ بِعَيْنِهِ** که موکل د یو معین شئ اخستلو وکیل جوړکړو. **فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَهُ لِنَفْسِهِ** نو وکیل لپاره جائز نه دی.چه وکیل هغه د خپل ذات لپاره واخلی. |

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې.که یوکس بل سړې د یو معین شئ اخستلو لپاره وکیل کړو.نو وکیل لپاره د دې متعین شئ خپل ځان لپاره اخستل جائز نه دی.تردې که وکیل دا متعین شئ خپل ځان لپاره واخستلو.نو بیا به هم دا اخستل موکل لپاره وی.وکیل لپاره به نه وی.که وکیل د عقد شراء په وخت خپل ځان لپاره د اخستلو نیت اوکړی.اوکه خپل ځان لپاره د اخستلو صراحت اوکړی.مثلاً دا اووائی.چه ای خلګ وا تاسو ګواه اوسئ.چه دا شئ ما دخپل ځان لپاره اخستې دی.خودا حکم هغه وخت دی.کله چې موکل د عقد شراء په وخت موجود نه وی.اوکه موکل د عقد شراء په وخت موجود وی.او وکیل خپل ځان لپاره د اخستلو صراحت اوکړی.نو په دې صورت کي به اخستل وکیل لپاره وی.

| |
|---|
| **لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى تَغْرِيرِ الْآمِرِ** څکه چې د وکیل خپل ذات لپاره اخستل موکل ته د دهوکې ور کاوه سبب دی. **حَيْثُ اعْتَمَدَ عَلَيْهِ** څکه چې موکل په دې باندې اعتماد کړی دی. |

**حل اللغة:** ① **تغرير**:دهوکه ورکول

**تشريح:** په اصل مسئله باندې دلیل دادی.چه د متعین شئ اخستلو په سلسله کي موکل په وکیل باندې اعتماد کړی دی.خو وکیل دا متعین شئ خپل ځان لپاره اخستلو کي موکل ته دهوکه ورکړې ده.او موکل یو مسلمان دې.او مسلمان ته دهوکه ورکول جائز نه دی.نود وکیل به دا متعین شئ خپل ځان لپاره اخستل جائز نه وی.

وَلِأَنَّ فِيهِ عَزْلَ نَفْسِهِ او ځکه چې په داسې کولوکې د وکيل خپل ځان (پخپله) معزول کول دي. وَلَا يَمْلِكُهُ عَلَى مَا قِيلَ إِلَّا بِمَحْضَرٍ مِنَ الْمُوَكِّلِ حالانکه د بعض عالمانو په قول وکيل ددې مالك نه دې. خود موکل په موجودګۍ کې.

**تشريح:** دوهم دليل دادې، چه هرکله وکيل دا متعين شئ خپل ځان لپاره اخستې دې. حالانکه د وکالت په حکم کې موکل لپاره اخستلو باندې مامور وو. نوګويا دې خپل ځان وکالت نه معزول کول غواړي. حالانکه د موکل په غيرموجودګۍ کې وکيل ته د خپل ځان معزول کاوه اجازت نه وي. لکه څنګه چې موکل ته د وکيل په غيرموجودګۍ کې د هغه د معزول کاوه اجازت نه وي. ځکه چې معزول کول، يا معزول کيدل فسخ د عقد ده. او فسخ د عقد د بل انډيوالان د علم نه بغير نه صحيح کيږي. نود وکيل خپل ځان معزول کول به د موکل په غيرموجودګۍ کې صحيح نه وي.

البته که موکل موجود وي. او وکيل ددې شئ خپل ځان لپاره د اخستلو صراحت کړې دې. نو په دې صورت کې د وکيل خپل ځان معزول کول چونکه دموکل په موجودګۍ کې دی. ځکه به دا صحيح وي. او ددې متعين شئ اخستل به د وکيل لپاره وي. موکل لپاره به نه وي.

فَلَوْ كَانَ الثَّمَنُ مُسَمًّى نو که ثمن بيان کړې شوې وي. فَاشْتَرَى بِخِلَافِ جِنْسِهِ بيا وکيل هغه د خلاف جنس په عوض واخستلو. أَوْلَمْ يَكُنْ مُسَمًّى يا ثمن نه وو بيان شوې. فَاشْتَرَى بِغَيْرِ النُّقُودِ خو وکيل د غيرنقود په عوض واخستلو. أَوْوَكَّلَ وَكِيلًا بِشِرَائِهِ يا وکيل بل څوك سرې ددې د اخستلو وکيل کړو. فَاشْتَرَى الثَّانِي نو دوهم وکيل واخستلو وَهُوَ غَائِبٌ حالانکه رومبې وکيل غائب دې. يَثْبُتُ الْمِلْكُ لِلْوَكِيلِ الْأَوَّلِ فِي هَذِهِ الْوُجُوهِ نو په دې صورتونوکې د رومبي وکيل لپاره ملك ثابتيږي. لِأَنَّهُ خَالَفَ أَمْرَ الْآمِرِ ځکه چې په دې صورتونوکې د موکل د امر مخالفت دې. فَيَنْفُذُ عَلَيْهِ نودا اخستل به هم په ده باندې نافذ وي.

**تشريح:** په دې عبارت کې دهغه صورتونوبيان کوی چې هغې کې به اخستل وکيل لپاره واقع کيږي. او وکيل به ددغه شئ مالك وي موکل به دهغې مالك نه وي. ① که موکل د ثمن مسمی په عوض د اخستلو وکيل کړو. بيا وکيل ددې ثمن مسمی د جنس خلاف په عوض واخستلو. مثلاً موکل د دراهمو ذکر اوکړو. او وکيل د دنانيرو په عوض واخستلو. نو په دې صورت کې به دا اخستل د وکيل لپاره وي. ځکه چې په دې صورت کې وکيل د موکل د حکم مخالفت کړې دې. لکه څنګه چې ښکاره ده. اود موکل د حکم مخالفت کاوه سره عقد په وکيل باندې نافذ کيږي. په موکل نه نافذ کيږي. نودا عقد شراء به وکيل باندې نافذ وي. او وکيل به ددې متعين شئ مالك وي. ② که موکل ثمن بيان کړې نه وي. بلکه وکيل ته ئې دا ونيلي وي. چه فلانی متعين شئ واخله. او راوړه. خو وکيل د نقود يعنی د دنانير او دراهمو نه علاوه د بل څه مکيلي يا موزوني شئ په عوض واخستلو. نو په دې صورت کې به هم دا اخستل وکيل لپاره وي. او وکيل به د اخستې شوی شئ مالك وي. موکل به مالك نه وي. ځکه چې په دې صورت کې هم وکيل د موکل د حکم مخالفت کړې دې په دې طريقه چې د موکل د ثمن نه بيانولو په وجه به ثمن متعارف اړخ ته واپس کيږي. او متعارف نقد بلد دې. يعنی د ښار مروجه سکه متعارف ده. نو د موکل حکم به هم دې نقد بلد اړخ ته راجع کيږي. اودا داسې شوه. لکه چې موکل داسې اوونيل. چه فلانی متعين شئ د نقد بلد په عوض واخله. او راوړه. خو وکيل د غيرنقود په عوض واخستلو. نود موکل د حکم د مخالفت په صورت کې عقد شراء د وکيل لپاره وي. او د اخستې شوی شئ مالك به وکيل وي. موکل به نه وي. نو په ذکرشوی صورت کې به هم اخستې شوې شئ وکيل لپاره وي. ③ داچه موکل يو سړې د يو متعين شئ اخستلو وکيل کړو. بيا دې وکيل بل کس وکيل جوړ کړو. بيا وکيل ثانی د وکيل اول په غيرموجودګۍ کې دا متعين شئ واخستلو. نو په دې صورت کې به هم دا اخستل وکيل اول لپاره وي. او هم هغه به ددغه شئ مالك وي. څه چې په دې صورت کې هم وکيل اول د موکل د حکم مخالفت کړې دې. په دې طريقه چې هرکله موکل دې وکيل جوړ کړې وو. نوګويا دا حکم ئې



ورکړې وو. چه ددې متعين شئ اخستلو په وخت ستا رائې موجود کيدل پکار دی. حالانکه په دې صورت کې د وکيل اول دغيرموجودګۍ په وجه د وکيل اول رائې اونه موندې شوه. او هرکله چې د وکيل اول رائې اونه موندې شوه. نود وکيل اول د اړخه د موکل د حکم مخالفت اوموندې شو. اود خپل موکل د حکم مخالفت کاوه سره چونکه عقد په وکيل باندې نافذ کيږي. په موکل باندې نه نافذ کيږي. په دې وجه په دې صورت کې به اخستل وکيل اول لپاره وي. د هغه د موکل لپاره به نه وي.

وَلَوِاشْتَرَى الثَّانِي بِحَضْرَةِ الْوَكِيلِ الْأَوَّلِ او که دوهم وکيل د رومبی وکيل په موجودګۍ کې واخستلو. نَفَذَ عَلَى الْمُوَكِّلِ الْأَوَّلِ نو اخستل به په موکل اول باندې نافذ وي. لِأَنَّهُ حَضَرَهُ رَأْيُهُ ځکه چې د رومبی وکيل رائې موجود ده. فَلَمْ يَكُنْ مُخَالِفًا نو وکيل اول د موکل د حکم مخالف نشو.

**تشريح:** اوکه وکيل ثانی د وکيل اول په موجودګۍ کې اخستل اوکړل. نودا اخستل به موکل اول باندې نافذ کيږي. ځکه چې په دې صورت کې د اخستلو په وخت د وکيل اول رائې متحقق (او موجود) شوې ده. او هرکله چې د وکيل اول رائې متحقق شوه. نو وکيل اول د خپل موکل مخالفت کونکې نشو. او هرکله چې رومبي وکيل د خپل موکل مخالفت کونکې نشو. نودا اخستل به دده په موکل باندې نافذ وي. په وکيل اول به نافذ نه وي.

### د غير معين غلام اخستونکي د غلام اخستلو حکم

قَالَ (وَإِنْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِغَيْرِ عَيْنِهِ): او که موکل د عبد غير معين اخستلو وکيل کړو. فَاشْتَرَى عَبْدًا نو وکيل يو غلام واخستلو. فَهُوَ لِلْوَكِيلِ إِلَّا أَنْ يَقُولَ نو هغه به د وکيل وي. خو که داسې اووائی. نَوَيْتُ الشِّرَاءَ لِلْمُوَكِّلِ چې ما د موکل لپاره د اخستلونيت کړې دې. أَوْيَشْتَرِيَهُ بِمَالِ الْمُوَكِّلِ يا ئې د هغه د مال نه واخلی.

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې. که يوسړی بل څوك د غير معين غلام اخستلو وکيل کړو. بيا وکيل يو غلام واخستلو. نودا اخستل به وکيل لپاره وي. او وکيل به ددې غلام مالك وي. خوکه وکيل دا اووائی. چه ما د موکل لپاره د اخستلو نيت کړې وو. يا وکيل دا غلام د موکل په مال سره واخلی. نو په دې دواړو صورتونو کې به دا غلام د موکل وي.

قَالَ: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. هَذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى وُجُوهٍ: چې ددې مسئلې يو څو صورتونه دی. إِنْ أَضَافَ الْعَقْدَ إِلَى دَرَاهِمِ الْآمِرِ که وکيل عقد د موکل دراهمو اړخ ته منسوب کړو. كَانَ لِلْآمِرِ نودا عقد به موکل لپاره وي. وَهُوَ الْمُرَادُ عِنْدِي بِقَوْلِهِ أَوْيَشْتَرِيَهِ بِمَالِ الْمُوَكِّلِ اويشتريه بمال الموكل دُونَ النَّقْدِ مِنْ مَالِهِ او زما په نيز د مصنف رحمه الله دقول ﴿أويشتريه بمال الموكل﴾ نه هم دا مراد دې. د موکل د مال نه اداکول مراد نه دی. لِأَنَّ فِيهِ تَفْصِيلًا وَخِلَافًا، وَهَذَا بِالْإِجْمَاعِ ځکه چې په دې کې تفصيل او اختلاف دې. اودا حکم بالاجماع دې. وَهُوَ مُطْلَقٌ حالانکه مطلق دې.

**تشريح:** ﴿أويشترى بمال الموكل﴾ کې علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه د قدوری په دې عبارت کې دوې (دوه) احتماله دی. ① يودا چې وکيل ثمن د موکل د مال نه اداکړی. او عقد هغه اړخ ته منسوب کړی. ② دوهم داچه وکيل عقد شراء د موکل دراهمو اړخ ته منسوب کړی. يعنی د موکل په مال سره د اخستلو يو مطلب دادې. چه وکيل د موکل د مال نه ثمن اداکړی. او دوهم مطلب دادې. چه وکيل عقد د موکل دراهمو اړخ ته منسوب کړی. شارح رحمه الله فرمائی. چه زما په نيز دا دوهم احتمال مراد دې. ځکه چې په رومبی احتمال کې څه قدرې تفصيل هم دې. او اختلاف هم دې. لکه چې وړاندې راروان دې. او دوهم احتمال چې وکيل عقد دموکل دراهمو اړخ ته منسوب کړی. نودا عقد به موکل لپاره واقع کيږي. مجمع عليه او متفق عليه دې.

﴿أويشتريه بمال الموكل﴾ د قدوری دا عبارت مطلق دې. يعنی په دې کې هيڅ اختلا ف ذکر نه دې. نو

هرکله چې په دې کې هیڅ اختلاف ذکر نه دې.نودا به په مجمع علیه او متفق علیه صورت باندې محمول کولې شي.یعنی هم دا به ونیلې شي.چه د قدوري عبارت ﴿أو يشتريه بمال الموكل﴾ سره مراد عقدشراء د موکل دراهمو اړخ ته منسوب کول دی.د موکل دراهمو اړخ ته د عقد منسوب کاوه نه بغیر د موکل د ثمن نه مال اداکول نه دی.

وَإِنْ أَضَافَهُ إِلَى دَرَاهِمِ نَفْسِهِ اوکه وکیل عقد شراء خپلو دراهمو اړخ ته منسوب کړه.كَانَ لِنَفْسِهِ نودا عقد شراء به وکیل لپاره وی. حَمْلًا لِحَالِهِ عَلَى مَا يَحِلُّ لَهُ شَرْعًا دده حال داسې شئ باندې محمول کاوه سره،کوم چې دده لپاره شرعاً حلال دې. أَوْ يَفْعَلُهُ عَادَةً یا هغه په عامه توګه (عام طور) باندې کوی. إِذِ الشِّرَاءُ لِنَفْسِهِ بِإِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى دَرَاهِمِ غَيْرِهِ مُسْتَنْكَرٌ شَرْعًا وَعُرْفًا ځکه چې دبل کس دراهمو اړخ ته د عقد نسبت کاوه سره خپل ځان لپاره اخستل شرعاً او عرفاً برابر دی.

تشریح: دوهم صورت دا دې چې وکیل عقد شراء خپلو دراهمو اړخ ته منسوب کوی.مثلاً داسې به وائی.چه ما دا غلام د خپلو دراهمو په عوض واخستلو. نودا عقد به پخپله د وکیل لپاره وی.او اخستې شوې غلام به د وکیل وی.د موکل به نه وی.

ذکر الدلیلین﴿ علامه مرغیناني رحمه الله ددې دواړه مسئلو نه روسته په ﴿حملاً لحاله على ما يحل له شرعاً أو يفعله عادة﴾ سره دوې (دوه) دلیلونه ذکر کړی دی.① یوعرفی دلیل دې. عرفی دلیل خو دې دواړو صورتونو ته ګډ دې.ځکه عرف په دې جاری دې.چه عقد خپلو دراهمو اړخ ته منسوب کونکې خپل ځان لپاره اخستونکې وی.اود موکل دراهمو اړخ ته منسوب کونکې موکل لپاره اخستونکې وی.نو ددې عرف په وجه رومبی صورت کې به عقد شراء موکل لپاره وی.او په دوهم صورت کې به وکیل لپاره وی.او شرعی دلیل خاص طور باندې رومبی صورت سره متعلق دې.په دې طریقه چې رومبې صورت دادې.که وکیل عقد شراء د موکل دراهمو اړخ ته منسوب کړو.نو عقد شراء به موکل لپاره وی.ځکه که عقد شراء د بل کس مال اړخ ته منسوب شي.او شراء خپل ځان لپاره وی.نودا حرام دی.ځکه چې په دې صورت کې د موکل د دراهمو غصب کول لازمیږی.اود غصب حرام کیدل ښکاره دی.اوکه عقد شراء خپل ځان اړخ ته منسوب وی.او شراء د بل لپاره وی.نودا حرام نه دی.ځکه چې په دې صورت کې دغصب مرتکب کیدل نه لازمیږی.بهرحال مصنف د هدایه رحمه الله په ﴿حملاً لحاله على ما يحل له شرعاً﴾ سره دلیل شرع بیان کړې دې.او په ﴿يفعله عادة﴾ سره ئې دلیل عرف بیان کړې دې.دلیل شرع صرف په رومبی صورت باندې دې.او دلیل عرف په دواړه صورتونو باندې دې.(كفايه)

وَإِنْ أَضَافَهُ إِلَى دَرَاهِمَ مُطْلَقَةٍ اوکه وکیل عقد شراء دراهم مطلقه اړخ ته منسوب کړو. فَإِنْ نَوَاهَا لِلْآمِرِ نوکه ده موکل لپاره د هغې نیت اوکړو. فَهُوَ لِلْآمِرِ نو هغه به د موکل لپاره وی. وَإِنْ نَوَاهَا لِنَفْسِهِ اوکه خپل ځان لپاره ئې نیت اوکړو. فَلِنَفْسِهِ نو هغه به دخپل ځان لپاره وی. لِأَنَّ لَهُ ځکه چې په دې توکیل کې وکیل لپاره جائز دی. أَنْ يَعْمَلَ لِنَفْسِهِ چې د خپل ځان لپاره عمل اوکړی. وَيَعْمَلَ لِلْآمِرِ فِي هَذَا التَّوْكِيلِ یا د موکل لپاره عمل اوکړی.

تشریح: دریم صورت دا دې چې وکیل عقد شراء مطلق دراهمو اړخ ته منسوب کوی.مثلاً دا به وائی.چه ما دا غلام د سلو دراهمو په عوض واخستلو.او دا اونه وائی.چه پخپلو سلو دراهمو یا د موکل د سلو دراهمو په عوض واخستلو. یعنی دراهم ئې خپل ځان اړخ ته یا موکل اړخ ته منسوب نکړل. نو په دې صورت کې که وکیل په دراهم مطلقه سره موکل لپاره د اخستلو نیت اوکړو.نودا عقد شراء به موکل لپاره وی.اوکه د خپل ځان لپاره ئې د اخستلو نیت اوکړو.نودا عقد شراء به پخپله وکیل لپاره وی.ځکه چې د غیرمعین غلام اخستلو د توکیل په صورت کې وکیل ته دواړه اختیاره وی.هغه ته د خپل ځان لپاره د اخستلو اختیار هم وی.او موکل لپاره د اخستلو اجازت هم وی.نو د اخستلو په وخت چې د چا نیت کوی.غلام به هم دهغه وی.



وَإِنْ تَكَاذَبَا فِي النِّيَّةِ او که موکل او وکیل دواړو په نیت کې یو بل دروغجن کړل. يُحَكَّمُ النَّقْدُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع به اداکول حکم جوړولې شی. لِأَنَّهُ دَلَالَةٌ ظَاهِرَةٌ عَلَى مَا ذَكَرْنَا، ځکه چې په ذکر شوی بیان باندې ښکاره دلیل دادې.

تشریح: بیا د دراهم مطلقه په صورت کې د وکیل او موکل په منځ کې اختلاف اوشو.یعنی وکیل اووئیل .چه دا غلام ما د خپل ځان لپاره اخستې دې.او موکل اووئیل.چه نا بلکه زما لپاره دې اخستې دی.نو په دې صورت کې به بالاتفاق د ثمن اداکول فیصل ګرځولې شی.یعنی که ثمن د وکیل د مال نه ادا کړې شوې دې.نودا اخستل به د وکیل لپاره وی.او وکیل به د غلام مالك وی.اوکه ثمن د موکل د مال نه اداکړې شوې دې.نودا اخستل به موکل لپاره وی.او موکل به ددې غلام مالك وی.ځکه چې ثمن اداکول په دې خبره باندې ښکاره دلیل دې.چه د وکیل حال په هغه باندې محمول کړې شی.کوم چې دده لپاره شرعاً حلال دې.یا دا عادةً کولې شی.یعنی که وکیل د خپل مال نه ثمن اداکړې دې.نودا د خپل مال نه ثمن ادا کاوه ددې خبرې علامت دې.چه دا اخستل پخپله د وکیل لپاره دی.ځکه چې عرفاً او عادةً داسې نشی کولې.چه موکل د خپل مال نه ثمن اداکړی.او اخستل د بل لپاره وی.اوکه د موکل د مال نه ئې ثمن اداکړې وی.نودا ددې خبرې دلیل دې.چه دا اخستل هم موکل لپاره دی.ځکه شرعاً دا خبره حرام ده.چه سړې اخستل خپل ځان لپاره اوکړی.او ثمن د بل کس د مال نه اداکړی.لکه څنګه چې وړاندې تیر شوی دی.چه په دې صورت کې به د وکیل غاصب کیدل لازمیږی.

وَإِنْ تَوَافَقَا اوکه دواړو اتفاق اوکړو. عَلَى أَنَّهُ لَمْ تَحْضُرْهُ النِّيَّةُ چې د اخستلو په وخت نیت موجود نه وو. قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: نوامام محمد رحمه الله فرمائی. هُوَ لِلْعَاقِدِ؛ چې دا عقد شراء به د عاقد (وکیل) لپاره وی. لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ كُلَّ أَحَدٍ يَعْمَلُ لِنَفْسِهِ ځکه چې اصل دادې.چه هرسړې خپل ځان لپاره عمل کوی. إِلَّا إِذَا ثَبَتَ جَعْلُهُ لِغَيْرِهِ خو کله چې دا ثابته شی.چه ده خپل کار د بل لپاره کړې دې. وَلَمْ يَثْبُتْ حالانکه دا ثابته نشوه.

تشریح: اوکه وکیل او موکل په دې خبره باندې متفق شو.چه د غلام اخستلو په وخت د وکیل هیڅ نیت نه وو.نوپه دې صورت کې د امام محمد رحمه الله فرمائی.چه دا اخستل د عاقد یعنی وکیل لپاره دی.

دلیله﴿ ځکه چې اصل دادې.چه سړې خپل ځان لپاره کار کوی.سوا ددې نه چې هغه خپل کار د بل چا لپاره (د هغه مال اړخ ته نسبت کاوه سره یا د هغه د پاره په نیت کاوه سره) اوګرځوی.خو چونکه دلته کې فرض کړې شوې دی.چه وکیل خپل اخستل بل چا لپاره نه دی ګرځولې.په دې وجه به دا اخستل عاقد یعنی وکیل لپاره وی.

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ يُحَكَّمُ النَّقْدُ؛(۱) اودامام ابویوسف رحمه الله په نیز به په دې کې هم اداکول حکم جوړولې شی. لِأَنَّ مَا أَوْقَعَهُ مُطْلَقًا ځکه چې وکیل کوم کار مطلق واقع کړې دې. يَحْتَمِلُ الْوَجْهَيْنِ هغه د دواړو صورتونو احتمال لری. فَيَبْقَى مَوْقُوفًا، نودا کار به موقوف پاتې وی. فَمِنْ أَيِّ الْمَالَيْنِ نَقَدَ نو دچا دمال نه ئې چې ثمن اداکړو. فَقَدْ فَعَلَ ذَلِكَ الْمُحْتَمَلَ لِصَاحِبِهِ دا محتمل کار به هم دهغه لپاره وی. وَلِأَنَّ مَعَ تَصَادُقِهِمَا يَحْتَمِلُ النِّيَّةَ لِلْآمِرِ، او ځکه چې د دواړو په عدم نیت باندې اتفاق کاوه سره موکل کول دی. وَفِيمَا قُلْنَا حَمْلُ حَالِهِ عَلَى الصَّلَاحِ كَمَا فِي حَالَةِ التَّكَاذُبِ لکه څنګه چې د یو بل دروغجن کاوه په صورت کې،

حل اللغة: ① تصادق:دیوبل تصدیق کول ② التکاذب:دیوبل تکذیب کول

تشریح: مذهب ابی یوسف رحمه الله ﴿ او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په دې صورت کې به هم د ثمن اداکول

(۱) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الكفاية (٤٦\٧) ونتائج الأفكار(٤٥\٧) نقلاً عن القول الراجح (١٥٤\٢)

اخستل به هم د هغه لپاره وي.اوهم هغه به د
فيصل جوړولي شي.يعنى دچا د مال نه چې ثمن ادا شوې وي.
غلام مالك وي.

دليله: ① څكه وكيل چې كوم اخستل كړى دى.هغه د نيت نه كاوه په وجه مطلق دى.او د دواړو صورتونو احتمال لري.يعنى دا احتمال هم دې.چه اخستل موكل لپاره وي.اودا احتمال هم دې.چه اخستل پخپله وكيل لپاره وي.نود دواړو احتمال درلودى په وجه به دا اخستل موقوف وي.يعنى نه به وكيل لپاره وي.اونه به موكل لپاره وي.بلكه دا به كتلې شى.چه ثمن دچا د مال نه اداكړې شوې دې.دا محتمل اخستل به هم د هغه لپاره وي. ② هركله وكيل او موكل په دې خبره باندې اتفاق اوكړو.چه د اخستلو په وخت د وكيل هيڅ نيت نه وو.نو په دې كي دا احتمال هم دې.چه وكيل موكل لپاره نيت كړې وي.خو هيرشوې وي.اوهركله چې دا احتمال هم شته.نو اخستل يقينى طور باندې عاقد يعنى وكيل لپاره څنګه كيداې شى ؟ اودا كوم چې مونږ د ابويوسف رحمه الله د اړخه وئيلى دى.هغې كي د وكيل حال په صلاح باندې محمول دې.په دې طريقه چې ثمن كه د موكل د مال نه ادا كړې شوې وي.او اخستل وكيل لپاره وي.لكه څنګه چې امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى.نو وكيل به غاصب وي.اوكه اخستل هم موكل لپاره وي.نو وكيل به غاصب نه وي.بهرحال د ثمن اداكول، فيصل جوړولو په صورت كي چونكه د وكيل حال په صلاح باندې محمول كيږي.په دې وجه د اخستلو په وخت په نيت نه موجود كيدلو باندې د اتفاق كاوه په صورت كي ، ثمن اداكول فيصل كرخول مناسب دى.

| وَالتَّوْكِيلُ بِالْإِسْلَامِ فِي الطَّعَامِ عَلَى هَذِهِ الْوُجُوهِ. او د غلې د بيع سلم لپاره وكيل هم په دې صورتونو باندې دى. |
|---|

**تشريح:** علامه مرغينانى رحمه الله فرمائي.چه د غلې د بيع سلم په سلسله كي د وكيل كاوه هم دغه صورتونه دى.كوم چې ذكر شو.څكه چې په بيع سلم كي غله هم غيرمعين وي.نوهركله چې وكيل بيع سلم اوكړو.نو كتلې به شى.چه ده عقد خپل مال اړخ ته منسوب كړې دې.يا د موكل مال اړخ ته، يا ئې مطلق دراهمو اړخ ته منسوب كړې دې.بيا د مطلق دراهمو په صورت كي دده څه نيت شته.او كه نشته.كه نيت ئې وي.نو خپل خان لپاره دې.اوكه موكل لپاره دې.يا دواړو په نيت كي اختلاف كړې دې.اوكه د وكيل او موكل اتفاق دې.چه نيت ئې نه دې كړې.نود امام ابويوسف او امام احمد رحمهما الله په منځ كي اختلاف دې.

### د اخستې شوې غلام په مړه كېدو سره د وكيل او موكل اختلاف

| قَالَ وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِأَلْفٍ كه يو كس يو سړى ته د زر روپو په عوض د يو غلام اخستلو حكم اوكړو فَقَالَ قَدْ فَعَلْتُ نو وكيل اووئيل.چه ما داسې كړى دى. وَمَاتَ عِنْدِي خوهغه غلام ما سره مړشوې دې. وَقَالَ الْآمِرُ او موكل اووئيل. اشْتَرَيْتَهُ لِنَفْسِكَ چې تا دا غلام خپل خان لپاره اخستې وو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ نود موكل قول به قبول وي. فَإِنْ كَانَ دَفَعَ إِلَيْهِ الْأَلْفَ نوكه موكل وكيل ته زر روپۍ وركړې وي. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَأْمُورِ نود وكيل قول به قبول وي. |
|---|

**حل اللغة:** ① الاستيناف: د اول نه پيل كول ② العهدة: ذمه وارى

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې.كه يوسړى بل كس د زر روپو په عوض د يو غلام اخستلو وكيل كړو.وكيل اووئيل.چه ما هغه غلام اخستې وو.خو هغه زما سره مړشو.او موكل اووئيل.چه داسې نه ده.بلكه هغه غلام تا د خپل خان لپاره اخستې وو.او موكل تراوسه پورې وكيل ته زر روپۍ نه دى وركړې.نو په دې صورت كي به د موكل قول معتبر وي.اودا اخستل به وكيل لپاره وي.موكل لپاره به نه وي.دا يو روايت د امام شافعى او امام احمد رحمهما الله هم دې.اوكه موكل وكيل ته زر روپۍ وركړې وي.او بيا داسې اختلاف پيدا شوې وي.نو بالاتفاق به د وكيل قول معتبر وي.

| لِأَنَّ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ أَخْبَرَ عَمَّا لَا يَمْلِكُ اسْتِئْنَافَهُ څكه چې په ړومبى صورت كي وكيل د داسې شئ خبر وركړې |
|---|



| دې.چه د كوم د ايجاد هغه مالك نه دې. وَهُوَ الرُّجُوعُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْآمِرِ او هغه د موكل نه ثمن واپس اخستل دى. وَهُوَ يُنْكِرُ حالانكه موكل د هغې منكر دې. وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ. او قول د منكر معتبر وي. |
|---|

**تشريح:** په دې دواړو صورتونو كي وجه د توپير داده.چه په ړومبى صورت كي يعنى په كوم صورت كي چې موكل وكيل ته ثمن نه دې وركړې.په هغه صورت كي وكيل ددا سې شئ خبر وركړې دې.كه د هغې سبب دې د سره دوباره موجود كول اوغواړي.نو موجود كولې ئې نشى.تفصيل ددې دادې.چه د وكيل دا وئيل چه ما ستا د حكم مطابق غلام اخستې وو.خو هغه غلام زما سره مړشوې دې.نو ددې مطلب دادې.چه وكيل د موكل نه د هغه مړشوى غلام ثمن اخستل غواړي.او موكل نه د ثمن اخستلو سبب عقد دې.حالانكه وكيل في الحال ددې غلام په عقد باندې قادر نه دې.څكه په كوم غلام كي چې كلام دې.هغه غلام مړ دې.او مړ غلام د عقد محل نه وي.نودا وكيل د هغه مړغلام په عقد شراء باندې قادر نه دې. او كوم سړې چې في الحال د يوڅيز په موجود كيدلو باندې قادر نه وي.د هغه شئ په سلسله كي دهغه قول معتبر نه وي.نود وكيل دا قول چې ما هغه غلام موكل لپاره اخستې وو.اوهغه زما سره مړشوې دې.نوبيا به هم معتبر نه وي.لكه مثلاً كه يوكس خپلې ښځې ته طلاق رجعى وركړو.او بيانې دا اووئيل.چه ما رجوع كړې وه.او ښځې اووئيل.چه تا رجوع نه ده كړې.نو په دې صورت كي كه د ښځې عدت پاته دې.نو د ميړه قول به معتبر وي.څكه چې په دې صورت كي د سره دوباره ميړه په رجوع كاوه باندې قادر دې.اوكه د عدت تيريدلو نه روسته دا اختلاف اوشو.نود ميړه قول به معتبر نه وي.څكه چې ميړه د سره دوباره في الحال په رجعت كاوه باندې قادر نه دې.نو دلته كي هم چونكه وكيل د غلام مړكيدلو په وجه في الحال د سره دوباره عقد كاوه باندې قادر نه دې.په دې وجه به د وكيل قول معتبر نه وي.

❗ علامه بدرالدين عينى رحمه الله ددې دليل په عبارت باندې يو لفظى اعتراض كړې دې.اود هغې خواب ئې ذكركړې دې.اعتراض دادې.چه په عبارت كي د ،،استينافه،، ضمير سره سبب رجوع يعنى عقد شراء مراد ده.لكه څنګه چې د تقرير په دليل كي ددې لحاظ ساتلې شوې دې.نو هركله چې عقد مراد دې.نو علامه مرغينانى رحمه الله د ،،استينافه،، د ضمير مرجع ښكاره كاوه سره ﴿وهوالرجوع بالثمن﴾ ولې فرمائيلى دى.

﴿وهوالعقد﴾ ئې ولې اونه فرمائيل؟

خواب ددې خواب دادې.چه دوباره د سره عقدشراء كاوه سره د وكيل مقصود موكل نه ثمن اخستل دى.موكل لپاره عقد شراء كول نه دى.نو علامه مرغينانى رحمه الله واسطه يعنى عقد پريښولو .او كوم چې مقصود وو.د هغې صراحت ئې فرمائيلې دې.نودا به د سبب ( رجوع بالثمن على الموكل) ذكركول او مسبب (عقد شراء) مراد اخستلو د قبيلې څخې وي.او دا جائز دى.

| وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي هُوَ أَمِينٌ او په دوهم صورت كي وكيل امين دې. يُرِيدُ الْخُرُوجَ عَنْ عُهْدَةِ الْأَمَانَةِ هغه د امانت د ذمه دارۍ نه وتل غواړي. فَيُقْبَلُ قَوْلُهُ نوهم دده قول به قبول وي. |
|---|

**تشريح:** او په دوهم صورت كي يعنى په كوم صورت كي چې موكل وكيل ته ثمن اداكړې دې.په دې صورت كي وكيل امين دې.او هغه په دې وئيلو سره چې ما د خپل خان لپاره غلام اخستې دې.خو هغه زما سره مړشوې دې.خپل خان د امانت ذمه دارۍ نه خلاصول دى.اود امانت په سلسله كي كه د مالك او امين په منځ كي دا اختلاف پيدا شى.چه زه د امانت د عهدې نه د برى كيدلو مدعى يم.اومالك ددې منكر وي.نود امين قول معتبر وي.نو دلته كي هم مالك چې د روپو مالك دې.دا دعوه كوي.چه تا غلام زما لپاره نه دې اخستې.بلكه خپل خان لپاره دې اخستې دې.نوتا عهده د امانت نه ده كړې. او وكيل كوم چې امين دې.هغه دعوه كوي.چه ما دا غلام ستا لپاره اخستې وو.نو ما د امانت ذمه دارى اداكړې ده.څكه به دلته كي هم د امين يعنى د وكيل قول معتبر وي.

وَلَوْكَانَ الْعَبْدُ حَيًّا حِيْنَ اخْتَلَفَا اوکوم وخت چې دوی دواړو اختلاف کړې دې.دغه وخت غلام ژوندې وی.اِنْ كَانَ الثَّمَنُ مَنْقُوْدًا نو که ثمن ( وکیل ته) ورکړې شوې وی. فَالْقَوْلُ لِلْمَأْمُوْرِ نو د وکیل قول به قبول وی.لِأَنَّهُ أَمِيْنٌ ځکه چې هغه امین دې.

حل اللغة: ① منقود: ورکړې شوې ،نقدې

تشريح: کوم وخت د موکل او وکیل په منځ کې اختلاف وی.یعنی وکیل اوونیل.چه ما دا غلام ستا لپاره اخستې دې.او موکل اوونیل.چه نه بلکه تا د خپل خان لپاره اخستې دې.دغه وخت که دا غلام ژوندې وی.او موکل وکیل ته ثمن ورکړې وی.نود وکیل قول به معتبر وی.

دليله ® ځکه چې وکیل امین دې.د امانت د عهدې نه وتل غواړی.او وراندې تیر شوی دی.چه د امین قول معتبروی.نو په دې صورت کې به هم د وکیل قول معتبر وی.

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَنْقُوْدًا اوکه ثمن نه دې ورکړې شوې. فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله نوبیا هم د صاحبینو رحمهما الله په نیز هم داسې دی. لِأَنَّهُ يَمْلِكُ اسْتِئْنَافَ الشِّرَاءِ ځکه چې هغه د سره د اخستلو مالك دې. فَلَا يُتَّهَمُ فِي الْإِخْبَارِ عَنْهُ. نوهغه به د اخستلو په خبر ور کاوه کې متهم نه وی. وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ الْقَوْلُ لِلْآمِرِ (1) اود ابوحنیفه رحمه الله په نیز د موکل قول معتبر دې. لِأَنَّهُ مَوْضِعُ تُهْمَةٍ ځکه چې دا د تهمت مقام دې. بِأَنِ اشْتَرَاهُ لِنَفْسِهِ په دې طریقه چې دا ئې خپل خان لپاره اخستې وی. فَإِذَا رَأَى الصَّفْقَةَ خَاسِرَةً أَلْزَمَهَا الْآمِرَ بیا کله ئې چې اوکتل.چه دا د نقصان معامله ده.نودا ئې د موکل په ذمه ورواچوله.

حل اللغة: ① الاستيناف: د اول نه پیل کول ② يتهم: متهم کولې شی ③ خاسرة: تاوانی ④ الصفقة: عقد ،معامله

مذهب ابی حنیفة رحمه الله ® خود امام اعظم رحمه الله په نیز به د موکل قول معتبر وی.

دليله ® چې د وکیل دا خبر ورکول، چې ما دا غلام موکل لپاره اخستې دې،، د تهمت محل دې.په دې طریقه چې وکیل اصلاً دا غلام خپل خان لپاره اخستې وی.خو کله چې په دې کې تاوان محسوس شو.نود موکل په ذمه ئې ددې د اچولو اراده کړې وی.نو ددې تهمت په وجه به د وکیل قول معتبر نه وی.بلکه د موکل قول به معتبر وی.ددې په خلاف کله چې موکل وکیل ته ثمن اداکړې وی.او بیا د وکیل او موکل په منځ کې اختلاف پیدا شوې وی.نود وکیل قول به ځکه معتبر وی.چه په دې صورت کې وکیل امین دې.اود امانت د عهدې نه په خلاصیدلو کې د امین قول معتبر وی.نو دلته کې هم د وکیل چې امین دې.د امانت د عهدې څخه به خلاصیدلو کې دده قول معتبر وی.او ددې په ضمن او تبعیت کې به د وکیل دا قول هم معتبراو قبول وی.چه د غلام اخستل موکل لپاره دی.او کوم شئ چې ضمناً تبعاً ثابتیږی.د هغې وصف اړخ ته نظر نشی کولې.نو په دې صورت کې د وکیل متهم یا غیرمتهم کیدلو اړخ ته به نظر نشی کیدلې.بلکه د وکیل قول به قبلولې شی.او دلته یعنی په کوم صورت کې چې موکل وکیل ته ثمن نه دې ورکړې.او غلام ژوندې دې.او په دې صورت کې چونکه د وکیل په قبضه کې ثمن نشته.ځکه به وکیل امین هم نه وی.او هرکله چې په دې صورت کې وکیل امین نه دې.نود هغه قول به هم معتبر نه وی.

### د معین غلام اخستو کښې د وکیل او موکل اختلاف

وَإِنْ كَانَ أَمَرَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ بِعَيْنِهِ اوکه موکل وکیل ته د یو معین غلام اخستلو حکم ورکړو. ثُمَّ اخْتَلَفَا بیا دواړو اختلاف اوکړو. وَالْعَبْدُ حَيٌّ حالانکه غلام ژوندې دې. فَالْقَوْلُ لِلْمَأْمُوْرِ نود وکیل قول به قبول وی. سَوَاءٌ كَانَ الثَّمَنُ مَنْقُوْدًا أَوْ غَيْرَ مَنْقُوْدٍ که ثمن ادا کړې شوې وی.اوکه نه وی اداکړې شوې. وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ اودا حکم بالاجماع

(1) القول الراجح هو هذا قول ابی حنیفة رحمه الله وهو الراجح كذا فی تبین الحقائق (۲۶۶\۴) والدرالمختار(۴۵۰\۴) نقلاً عن القول الراجح(۱۵۵\۲)



دې.

تشريح: د تیرې شوې مسئلې یو صورت دادې.چه موکل وکیل ته د یو متعین غلام اخستلو حکم ورکړو.بیا په دواړو کې اختلاف شو.یعنی موکل اوونیل.چه دا غلام تا د خپل خان لپاره اخستې دې.او وکیل اوونیل.چه نا بلکه ما ستا لپاره اخستې دې.او ددې اختلاف په وخت غلام ژوندې دې.نو حضرت امام صاحب رحمه الله او ددوی دواړه شاګردان ( امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله) په دې باندې متفق دی.چه په دې صورت کې به د وکیل قول معتبر وی.که موکل وکیل ته ثمن ورکړې وی.اوکه نه وی ورکړې.

لِأَنَّهُ أَخْبَرَ عَمَّا يَمْلِكُ اسْتِئْنَافَهُ، ځکه چې وکیل د داسې شئ خبر ورکړې دې.چه ددې په دوباره کاوه باندې قادر دې. وَلَا تُهْمَةَ فِيْهِ، او په دې کې څه تهمت هم نشته. لِأَنَّ الْوَكِيْلَ بِشِرَاءِ شَيْءٍ بِعَيْنِهِ لَا يَمْلِكُ شِرَاءَهُ لِنَفْسِهِ بِمِثْلِ ذٰلِكَ الثَّمَنِ فِيْ حَالِ غَيْبَتِهِ عَلٰى مَا مَرَّ، ځکه چې د یو معین شئ اخستلو وکیل د موکل په غیرموجودګئ کې ددې ثمن د عوض په مثل خپل خان لپاره د اخستلو مالك نه وی.لکه څنګه چې تیر شوی دی. بِخِلَافِ غَيْرِ الْمُعَيَّنِ عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ لِأَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ. په خلاف د غیرمعین غلام،لکه څنګه چې موږ د امام ابوحنیفه رحمه الله په دلیل کې بیان کړی دی.

تشريح: چې وکیل دا اوونیل.چه دا غلام ما موکل لپاره اخستې دې.نود یو داسې شئ خبر ئې ورکړې دې.کوم چې دې د سره دوباره بیا کولې شی.یعنی اختلاف نه روسته وکیل دا غلام دوباره بیا د موکل لپاره اخستې شی.او وکیل به په دې خبر ور کاوه کې متهم نه وی.او وکیل به ځکه متهم نه وی.چه کوم سړې د یو متعین شئ اخستلو وکیل وی.هغه ته د موکل په غیرموجودګئ کې ددې ثمن په اندازه عوض باندې ددې شئ خپل خان لپاره د اخستلو اجازت نه وی.لکه څنګه چې وړاندې تیر شوی دی.نو هرکله چې وکیل ته ددې متعین شئ خپل خان لپاره د اخستلو اجازت نشته.نو هغه پخپله دې خبر کې چې ما دا غلام موکل لپاره اخستې دې.قطعاً متهم نه وی.ددې په خلاف که د غیر معین غلام اخستلو وکیل وی.او بیا وکیل دا اووائی.چه ما دا غلام موکل لپاره اخستې دې.نو وکیل پخپل دې خبر کې متهم کیداې شی.لکه څنګه چې د تیرې شوې مسئلې لاندې د امام ابوحنیفه رحمه الله په دلیل کې تفصیل سره بیان شوی دی.

### د موکل په نوم غلام اخستو نه غلام خستو نه روسته د وکیل انکار او د موکل دعوی

وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ که یوکس بل ته اوونیل. بِعْنِيْ هٰذَا الْعَبْدَ لِفُلَانٍ) چې ته د فلانی لپاره دا غلام زما په لاس راخرڅ کړه. فَبَاعَهُ نو هغه دا خرڅ کړو. ثُمَّ أَنْكَرَ أَنْ يَكُوْنَ فُلَانٌ أَمَرَهُ بیا قائل ددې خبرې نه انکار اوکړو.چه فلانی ددې حکم ورکړې دې. ثُمَّ جَاءَ فُلَانٌ بیا فلانې راغئ. وَقَالَ او هغه اوونیل. أَنَا أَمَرْتُهُ بِذٰلِكَ چې ما ده ته ددې غلام اخستلو حکم ورکړې وو. فَإِنَّ فُلَانًا يَأْخُذُهُ نو فلانې سړې به دا( غلام) اخلی.

تشريح: صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی مثلاً خالد دوهم سړی مثلاً حامد ته اوونیل.چه زه د فلانی مثلاً د شاهد د اړخه ستا ددې غلام اخستلو وکیل یم.نوته دا خپل غلام زما په لاس د فلانی یعنی شاهد لپاره راخرڅ کړه.حامد دا غلام دخالد په لاس خرڅ کړو.بیا خالد اوونیل.چه شاهد ماته ددې غلام اخستلو حکم نه وو راکړې.یعنی زه د شاهد وکیل نه یم.بلکه ما دا غلام خپل ذات لپاره اخستې دې.بیا فلانې یعنی شاهد راغئ.او وې وئیل.چه ما خالد ته ددې غلام اخستلو حکم ورکړې وو.او خالد دا غلام زما لپاره اخستې دې.نو په دې صورت کې به فلانی یعنی شاهد ته دا حق وی.چه هغه د مشتری یعنی خالد نه دا غلام واخلی.او ثمن اداکړی.

لِأَنَّ قَوْلَهُ السَّابِقَ إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْوَكَالَةِ عَنْهُ ځکه چې د قائل قول د مخکنی قائل د اړخه د وکالت عن فلان اقرار دې. فَلَا يَنْفَعُهُ الْإِنْكَارُ اللَّاحِقُ نو دده لاحق انکار به دده لپاره ګټور نه وی.

**تشریح:** ددې دلیل دادې چه د خالد ږومبې قول چې دا غلام زما په لاس شاهد لپاره راخرڅ کړه.د خالد د اړخه ددې خبرې اقرار دې.چه هغه د شاهد د اړخه ددې غلام اخستلو وکیل دې.بیا اخستلو نه روسته خالد د شاهد د اړخه وکیل کیدلو نه انکار کړې دې.حالانکه تیرشوې اقرار د اوس لاحق شوی انکار په وجه نه باطلیږی.یعنی که د اقرار کاوه نه روسته ئې انکار اوکړو.نو په دې انکار سره به دده تیرشوې اقرار نه باطلیږی.نو دلته کې به هم د خالد تیرشوې اقرار د هغې نه روسته انکار سره نه باطلیږی.او هرکله چې د خالد اقرار بالوکالت باطل نشو.نود هغه اخستې شوې غلام به موکل یعنی شاهد لپاره وی.د وکیل یعنی خالد لپاره به نه وی.

| فَإِنْ قَالَ فُلَانٌ نوکه فلانی اووئیل.لَمْ آمُرْهُ چې ما ده ته حکم ورکړې نه وو.لَمْ يَكُنْ لَهُ)نو هغه لپاره به غلام اخستې شوې نه وی.لِأَنَّ الْإِقْرَارَ يَرْتَدُّ بِرَدِّهِ.ځکه چې اقرار د هغه په رد کاوه سره رد شو. |
|---|

**حل اللغة:** ① يرتد: واپس کیږی

**تشریح:** اوکه فلانی یعنی شاهد اووئیل.چه ما خالد ته د ذکر شوی غلام اخستلو حکم نه وو ورکړې.نو په دې صورت کې به شاهد ته د ذکرشوی غلام اخستلو هیڅ حق نه وی.ځکه چې مشتری یعنی خالد د خپل وکیل کیدلو کوم اقرار کړې وو.هغه د موکل یعنی د شاهد په رد کاوه سره رد شوې دې.او هرکله چې د خالد اقرار بالوکالت رد شو.نو مذکوره اخستې غلام به پخپله خالد ( مشتری ) لپاره وی.شاهد لپاره به نه وی.ددې نه روسته که شاهد د خالد د اقرار تصدیق هم اوکړی.نودا تصدیق به هغه لپاره ګټور نه وی.ځکه چې د شاهد د رد کاوه په وجه هرکله د خالد اقرار منتفی شو.نو اوس به د شاهد تصدیق صحیح نه وی.

| قَالَ إِلَّا أَنْ يُسَلِّمَهُ الْمُشْتَرِي لَهُ که وې وئیل.چه فلانی لپاره غلام اخستونکې غلام فلانی ته اوسپاری.فَيَكُونُ بَيْعًا عَنْهُ نودا به د مشتری د اړخه بیع وی.وَعَلَيْهِ الْعُهْدَةُ او په دې فلانی به ذمه داری وی. |
|---|

**حل اللغة:** ① العهدة: ذمه واری

**تشریح:** دامام محمد رحمه الله قول «إلا أن يسلمه المشترى له» د تیرشوی عبارت «لم يكن ذالك له» نه مستثنی دې. یعنی که فلانی یعنی شاهد اووئیل.چه ما خالد ته د مذکوره غلام اخستلو حکم نه ووکړې.نو په دې صورت کې به شاهد لپاره د مذکوره غلام اخستلو هیڅ حق نه وی.خو یو صورت داسې دې.چه هغې کې ددې وئیلو باوجود شاهد ته د غلام اخستلو حق حاصل دې.او هغه صورت دادې.کوم چې په «أن يسلمه المشترى له» سره بیان کړې شوې دې.

① صاحب د فتح القدیر لیکلی دی.چه دلته کې لفظ د مشتری په دوې (دوه) روایتونو سره نقل دې.یو د راء په ك سره سره. دوهم د راء په فتحه سره.د ك سره په صورت کې به لفظ،،المشترى ،، د،،ان يسلم،، فاعل وی.او د،،له،، لام به اجل لپاره وی.او ددې ضمیر به فلانی ( شاهد) اړخ ته راجع وی.اود،،یسلمه،، ضمیر منصوب به مفعول اول وی.او ددې مرجع به عبد مذکور وی.او مفعول ثانی یعنی ،،الیه،، به محذوف سرې ( خالد) دا غلام فلانی ( شاهد) ته اوسپاری.نو فلانی یعنی شاهد ته به دا حق وی.چه هغه دا غلام واخلی.او ددې ثمن خالد ته ورکړی.

② او د راء د فتحه په صورت کې د،،ان یسلمه،، ضمیر منصوب مفعول اول دې.او مرجع عبد دې.او ،،المشتری له،،د حرف جر نه بغیر مفعول ثانی دې.اود،،مشتری له،، نه مراد هغه فلانې ( شاهد) دې.اود،، ان یسلمه،، فاعل ضمیر مرجوع دې.کوم چې مشتری ( خالد) اړخ ته راجع دې.اوس به مطلب دا وی.که اخستونکې ( خالد) دا غلام مشتری له یعنی فلانی ( شاهد) ته اوسپاری.نو شاهد ته دا حق حاصل دې.چه هغه دا غلام واخلی.او ددې ثمن اداکړی.اوس د پوره عبارت لنډیز به دا وی.که شاهد اووئیل.چه ماخالد ته د مذکوره غلام اخستلو حکم نه وو ورکړې.نو شاهد به د مذکوره غلام اخستلو حقدار نه



وی.البته که خالد دا غلام شاهد ته اوسپاری.نو په دې صورت کې شاهد ددې غلام اخستلو حقدار دې.خو دده د اخستلو حقدرا کیدل په دې وجه نه دی.چه خالد د شاهد داړخه وکیل بالشراء دې.بلکه په دې وجه دې.چه د خالد شاهد ته غلام سپارل، د خالد د اړخه بیع ده.اود شاهد دا ذمه داری ده.چه هغه ثمن ورکړی.اودا غلام واخلی.

| لِأَنَّهُ صَارَ مُشْتَرِيًا بِالتَّعَاطِي ،ځکه چې دا فلانې د تعاطی په ذریعه مشتری شو.كَمَنِ اشْتَرَى لِغَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ لکه هغه کس چاچه د خپل غیر لپاره د هغه د حکم نه بغیر واخستلو حَتَّى لَزِمَهُ تردې چې دا به د اخستونکې په لازم وی.لَمْ يُسَلِّمْهُ الْمُشْتَرِي لَهُ بیا دچا لپاره ئې چې اخستې وو.هغه ته ئې اوسپارلو. |
|---|

**حل اللغة:** ① التعاطی: یوبل ته ورکول

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله په دلیل کې فرمائی.چه د خالد اوشاهد په منځ کې به دا لین دین د بیع تعاطی په طور وی.یعنی خالد به د بیع تعاطی په طور خرڅونکې وی.او شاهد به اخستونکې وی.او بیع تعاطی جائز ده. لکه څنګه چې د،،کتاب البیوع،، په پیل کې تیرشوی دی.نود خالد او شاهد لین دین به هم جائز وی.او ددې مثال داسې دې.لکه یو فضولی سړې مثلاً واصف خپل غیر مثلاً عارف لپاره د عارف د حکم نه بغیر څه شئ واخلی.نودا عقد شراء به مشتری یعنی واصف باندې لازم وی.خو بیا مشتری ( واصف) دا شئ عارف ته اوسپارلو.نودا به بیع تعاطی وی.یعنی د بیع تعاطی په طور به واصف خرڅونکې وی.او عارف به اخستونکې وی.

| وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى أَنَّ التَّسْلِيمَ عَلَى وَجْهِ الْبَيْعِ يَكْفِي لِلتَّعَاطِي او دا مسئله په دې باندې دلالت کوی.چه د بیع په طور سپارل تعاطی لپاره کافی دی. وَإِنْ لَمْ يُوجَدْ نَقْدُ الثَّمَنِ اکرچه ثمن ادا کول او نه موندې شی. |
|---|

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.د بیع تعاطی لپاره دومره کافی ده.چه علی وجه البیع یوڅیز چاته اوسپارلې شی.اګرچه د قبضه کونکې د اړخه د ثمن اداکول اونه موندې شی.یعنی بیع تعاطی چې څنګه په اخذ او اعطاء، یعنی د مبیع اخستلو او ثمن ادا کاوه سره منعقد کیږی.دغه ډول اخذ بلا اعطاء یعنی د ثمن ادا کاوه نه بغیر صرف د مبیع په اخستلو سره هم منعقد کیږی.لکه څنګه چې د خلګو عادت دې.لکه تاسو به کتلې وی.چه په دوکانونو باندې د کومو خلګو حساب کتاب روان وی.هغوی د دوکان نه د ایجاب او قبول نه بغیر سامان اخلی.او اوړی.او فوری طور باندې ثمن نه اداکوی.اود ایجاب او قبول نه بغیر د لین دین نوم بیع تعاطی ده.نود خلګو په تعامل سره ثابته شوه.چه د ثمن ادا کاوه نه بغیر هم بیع تعاطی منعقد کیږی.

| وَهُوَ يَتَحَقَّقُ فِي النَّفِيسِ وَالْخَسِيسِ او بیع تعاطی په نفیس او خسیس ( اعلی او ادنی ) دواړوکې متحقق کیږی.لِاسْتِتْمَامِ التَّرَاضِي ځکه چې خپل منځ کې رضامندی پوره ده.وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي الْبَابِ.او په بیع کې هم دا معتبر ده. |
|---|

**حل اللغة:** ① يتحقق: ثابتیږی ② النفيس: قیمتی،عمده ③ الخسيس: خراب ④ الاستتمام: پوره کول

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه بیع تعاطی په اشیائې نفیسه او اشیائې خسیسه ( په اعلی او ادنی ) دواړو کې متحقق کیږی.یعنی بیع تعاطی چې څنګه په خسیس څیزونوکې جائز ده.دغه ډول په نفیس څیزونو کې هم جائز ده.ځکه چې د بیع صحیح کیدلو لپاره د عاقدینو خپل منځ کې رضامندی شرط ده.لکه چې الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ﴾ او خپل منځ کې رضامندی په نفیس او خسیس دواړه قسمه څیزونوکې د هریو په بیع تعاطی کې پوره طور موجود ده.نود هر یو بیع تعاطی به جائز وی.امام کرخی رحمه الله فرمائی.چه بیع تعاطی صرف په خسیس څیزونوکې جائز ده.ددې پوره تفصیل د کتاب البیوع په اول کې تیر شوې دې.

## د دوو معین غلامانو اخستو نه لپ د وکیل په هغو کښې د یو غلام اخستو حکم

قَالَ (وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا أَنْ يَشْتَرِيَ لَهُ عَبْدَيْنِ بِأَعْيَانِهِمَا) او که یوکس یو سړی ته ددې خبرې حکم اوکړو.چه هغه دده لپاره دوې (دوه) معین غلامان واخلی. (وَلَمْ يُسَمِّ لَهُ ثَمَنًا) او هغه ته ثمن بیان نکړو. (فَاشْتَرَى لَهُ أَحَدَهُمَا) بیا دغه سړی مؤکل لپاره په دغه دواړوکې یوغلام واخستلو. (جَازَ) نو جائز دي. (لِأَنَّ التَّوْكِيلَ مُطْلَقٌ) ځکه چې توکیل مطلق دي. (فَيَجْرِي عَلَى إِطْلَاقِهِ) نو هغه به پخپل اطلاق باندې جاری کیږی.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی مثلاً خالد دوهم سړی مثلاً شاهد ته اوونیل.چه ته زما لپاره دا دوې (دوه) معین غلامان واخله.او راوله.او وکیل (خالد) په غلامانو کې یو غلام مؤکل لپاره واخستلو.نودا اخستل جائز دی.ځکه چې په دې صورت کې توکیل مطلق دې.یعنی مؤکل ددې دواړو غلامانو اخستل نه په جلا جلا اخستلو سره مقید کړی دی.اونه ئې دواړه د یوځائې په قید سره مقید کړی دی.بلکه مطلق ئې ساتلی دی.او مطلق پخپل اطلاق باندې جاری کیږی.نوکه وکیل دواړه غلامان جلا جلا واخلی.یا ئې یوځائې واخلی.دواړه صورتونه جائز دی.یعنی په دواړه صورتونوکې به اخستل مؤکل لپاره وی.

(وَقَدْ لَا يَتَّفِقُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا فِي الْبَيْعِ) او کله په بیع کې دواړه غلامان جمع کول ممکن نه وی. (إِلَّا فِيمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ) خو په هغه صورت کې په کوم کې چې خلګ دهوکه نه خوری. (لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ بِالشِّرَاءِ) ځکه چې دا توکیل بالشراء دي. (وَهَذَا كُلُّهُ بِالْإِجْمَاعِ) اودا واړه بالاجماع دی.

**حل اللغة:** ① يتغابن: تاوان کوی

**تشریح:** علامه مرغینانی ﷺ فرمائی.چه کله دواړه غلامان یو ځائې اخستل ممکن نه وی.په دې وجه هم که وکیل یو غلام واخستلو.نودا اخستل به مؤکل باندې نافذ وی.البته که وکیل یو غلام به غبن فاحش سره واخستلو. نودا اخستل به جائز نه وی.یعنی ددې ذمه دار به وکیل وی.او مؤکل به ذمه دار نه وی.

**دلیله۞** دا توکیل بالشراء ده.یعنی مؤکل هغه د اخستلو وکیل جوړکړې دې.او توکیل بالشراء بالاجماع د غبن فاحش متحمل نه دې.یعنی د مؤکل دارخه وکیل بالشراء ته غبن فاحش سره د اخستلو اجازت نه وی.نوکه وکیل بالشراء غبن فاحش سره واخستلو.نود مؤکل د حکم خلاف کیدلو په وجه به دا اخستل مؤکل باندې نه نافذ کیږی.بکله په وکیل به نافذ وی.

**المسئلة بالاجماع۞** علامه مرغینانی ﷺ فرمائی.چه دا پوره مسئله بالاجماع ده.علامه ابن الهمام ﷺ فرمائی.چه صاحب دهدایه ﷺ د توکیل په قید سره عقد ځکه کړې دې.چه د توکیل بالبیع په صورت کې که وکیل غبن فاحش سره خرڅ کړو.نود امام صاحب ﷺ په نیز دا خرڅول جائز دی.یعنی که د یو غلام خرڅولو ئې ځوک وکیل کړو.او د غلام قیمت دوې (دوه) سوه روپۍ ووه.خو وکیل دا په درې سوه روپۍ خرڅ کړو.نود امام صاحب ﷺ په نیز دا جائز دی.اودا بیع مؤکل لپاره ده.وکیل لپاره نه ده.

### د زرو روپو په عوض د دوو غلامانو اخستلو نه روسته د وکیل په کم یا زیات باندې د اخستلو حکم

(وَلَوْ أَمَرَهُ بِأَنْ يَشْتَرِيَهُمَا بِأَلْفٍ) وکه مؤکل وکیل ته حکم اوکړو.چه دا دواړه غلامان د زر روپو په عوض واخله. (وَقِيمَتُهُمَا سَوَاءٌ) و ددوی دواړو قیمت برابر دي. (فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِنِ اشْتَرَى أَحَدَهُمَا بِخَمْسِمِائَةٍ أَوْ أَقَلَّ) نود امام ابوحنیفه ﷺ په نیز که په دواړوکې یو د پنځه سوه روپو یا دکم په عوض باندې واخستلو. (جَازَ) نو جائز دی. (وَإِنِ اشْتَرَى بِأَكْثَرَ) وکه د زیات په عوض ئې واخستلو. (لَمْ يَلْزَمِ الْآمِرَ) نودا اخستل به دمؤکل په ذمه لازم نه وی.

**تشریح:** حضرت امام ابوحنیفه ﷺ فرمائی. که یوسړی بل سړې د یو زر روپو په عوض ددا سې دوې (دوه) غلامانو وکیل کړو. چې د هغوی قیمت هم برابر دې.نوکه وکیل په دوی دواړو غلامانوکې یوغلام د پنځه سوه روپو یا د پنځه سوه روپو نه د کم په عوض واخستلو.نودا اخستل به جائز وی.او په مؤکل به نافذ وی.



خوکه د پنځه سوه روپو نه د زیاتی په عوض ئې واخستلو.نودا اخستل به مؤکل باندې لازم نه وی.بلکه په وکیل به لازم وی.د پنځه سوه روپو نه زیاتی مقدار که کم وی.او که زیات وی.

(لِأَنَّهُ قَابَلَ الْأَلْفَ بِهِمَا) ځکه چې مؤکل د دواړو په مقابله کې زر (روپۍ) بیان کړی دی. (وَقِيمَتُهُمَا سَوَاءٌ) او ددوی دواړو قیمت برابر دي. (فَيُقَسَّمُ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ دَلَالَةً) نو زر روپۍ به دواړو په منځ کې دلالةً نیم په نیمه تقسیمیږی. (فَكَانَ آمِرًا بِشِرَاءِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِخَمْسِمِائَةٍ) نو ګویا مؤکل په دوی دواړوکې هر یو د پنځه سوه روپو په عوض د اخستلو حکم ورکونکی دي. (ثُمَّ الشِّرَاءُ بِهَا مُوَافَقَةٌ) بیا د پنځه روپو په عوض اخستل موافقت دي. (وَبِأَقَلَّ مِنْهَا مُخَالَفَةٌ إِلَى خَيْرٍ) اود پنځه سوه روپو نه د کم په عوض اخستل بهتروالی اړخ ته مخالفت دي. (وَالزِّيَادَةُ إِلَى شَرٍّ قَلَّتِ الزِّيَادَةُ) او د پنځه سوه نه د زیات په عوض اخستل بدئ اړخ ته مخالفت دي.زیاتوالي کم وی. (أَوْ كَثُرَتْ فَلَا يَجُوزُ) او که ډیر وی.جائز نه دي.

**تشریح:** ددې دلیل دادې.چه مؤکل زر روپۍ د دواړو غلامانو مقابل ګرځولې دی.اود دواړه غلامانو قیمت برابر دي.نو دلالةً دا خبره ثابت شوه.چه زر روپۍ به دواړو غلامانو په منځ کې نیم په نیمه تقسیمیږی.ګویا مؤکل د دواړو غلامانو کې هر یو غلام د پنځه سوه روپو په عوض اخستلو وکیل کړې دې.نوکه وکیل یو غلام د پنځه سوه روپو په عوض واخستلو.نودا اخستل به د مؤکل د حکم عین موافق وی . او هرکله چې دا اخستل د مؤکل د حکم عین موافق دی.نودا اخستل به جائز وی.او په مؤکل به نافذ وی . اوکه وکیل یو غلام د پنځه سوه روپو نه د کم په عوض واخستلو.نوپه دې کې بلاشبه د مؤکل د حکم مخالفت دې.خوپه دې مخالفت کې د مؤکل فائده او خیر دې.نو دا اخستل به هم جائز وی.او په مؤکل به نافذ وی.البته که وکیل یو غلام د پنځه سوه روپو په زیات عوض باندې واخستلو.او زیاتی مقدار که کم وی.او که زیات وی.نو په دې کې د مؤکل د حکم مخالفت دې.اود مؤکل نقصان دې.او هرکله چې د مؤکل د حکم مخالفت دې.او دهغه نقصان دې.نودا اخستل به مؤکل لپاره جائز نه وی.یعنی ددې اخستلو ذمه دار به وکیل وی.مؤکل به هیڅ چرې ذمه دار نه وی.

(إِلَّا أَنْ يَشْتَرِيَ الْبَاقِيَ بِبَقِيَّةِ الْأَلْفِ قَبْلَ أَنْ يَخْتَصِمَا) خودا چې پاته غلام په زرو کې د پاته په عوض د خصومت راپیښیدلو نه وړاندې واخلی. (اسْتِحْسَانًا) نودا به استحساناً جائز وی. (لِأَنَّ شِرَاءَ الْأَوَّلِ قَائِمٌ) ځکه چې د رومبی غلام اخستل قائم مقام دی. (وَقَدْ حَصَلَ غَرَضُهُ الْمُصَرَّحُ بِهِ) اود مؤکل غرض دکوم چې صراحت شوي وو. (وَهُوَ تَحْصِيلُ الْعَبْدَيْنِ بِالْأَلْفِ) یعنی د زر روپو په عوض دواړه اخستل، هغه حاصل شوي دي. (وَمَا ثَبَتَ الِانْقِسَامُ إِلَّا دَلَالَةً) او بټواره (تقسیم) ثابت نشوه.خو په دلالت سره. (وَالصَّرِيحُ يَفُوقُهَا) او صریح د دلالت نه زیات دي.

**حل اللغة:** ① غرض: مقصد ② الانقسام: تقسیمول ③ الصریح: ښکاره ④ یفوق: پورته کیږی، زیاتیږی

**تشریح:** خوکه وکیل یو غلام د پنځه سوه روپۍ نه زیات مثلاً د شپږ سوه روپو په عوض واخستلو.او بیا د وکیل او مؤکل په منځ کې د خصومت راپیښیدو نه مخکې مخکې وکیل دوهم غلام په زر روپۍ کې د پاته رقم یعنی دڅلور سوه روپو په عوض واخستلو.نودا اخستل به هم استحساناً جائز وی.او په مؤکل به لازم او نافذ وی.اګرچه د قیاس تقاضه داده.چه په دې صورت کې به هم اخستل مؤکل باندې لازم نه وی.ځکه چې په دې صورت کې هم د مؤکل مخالف موجود دې.او هرکله چې د مؤکل مخالفت موجود دې.نو مذکوره اخستل به مؤکل باندې نه نافذ کیږی.د امام مالك، امام شافعی او امام احمد ﷺ قول هم د قیاس مطابق دې.

**وجه الاستحسان۞** وجه د استحسان داده.چه رومبی غلام کوم ئې چې د شپږ سوه روپو په عوض اخستې وو.د هغه اخستل اوسه پورې قائم دی.د خصومت په وجه د هغه حال نه دې متغیر شوې.بیا کله چې وکیل دوهم غلام د څلور سوه روپو په عوض واخستلو.نو د مؤکل غرض کوم چې هغه صراحة بیان کړې وو.چه دواړه

غلامان د زر روپو په عوض واخستلې شي.هغه حاصل شو.او زر روپۍ په دواړو غلامانو باندې برابر منقسم كيدل د موكل د كلام نه دلالةً ثابت دي.يعنې بيع جائز شوه او په موكل باندې ثمن لازم شو.

## د صاحبينو نقطه نظر

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله[1] او صاحبين رحمهما الله فرمائي. إِنْ اشْتَرَى أَحَدَهُمَا بِأَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ الْأَلْفِ بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ كه وكيل په دوی دواړوغلامانوكې يو غلام د يو زر دنيمې نه په دومره اندازه زيات عوض باندې واخستلو.په كوم كې چې په عامه توګه (عام طور) باندې خلګ دهوكه كيږي. وَقَدْ بَقِيَ مِنَ الْأَلْفِ مَا يَشْتَرِي بِمِثْلِهِ الْبَاقِي او په زر روپوكې دومره قدرې پاته دي.چه ددې د مثل په عوض دوهم اخستلې كيداې شي. جَازَ نودا جائز دي.

**تشريح:** په تيره شوې مسئله كې د صاحبينو رحمهما الله قول دادې.كه وكيل يوغلام د پنځه سوه روپو نه په دومره اندازه زيات عوض باندې واخستلو.په كوم كې چې عام خلګ دهوكه كيږي.يعنې په غبن يسير سره ئې واخستلو.مثلاً د پنځه سوه روپو ماليت غلام ئې د پنځه سوه پنځيشتو روپو په عوض واخستلو.او په زر روپو كې دومره قدرې رقم پاته دې.(مثلاً پنځيشت كم پنځه سوه روپۍ) چې ددې په عوض دوهم غلام اخستلې كيداې شي.نودا اخستل جائز دي.او ددې نفاذ به په موكل باندې وي.يعنې دا اخستل به موكل لپاره وي.

لِأَنَّ التَّوْكِيلَ مُطْلَقٌ خكه چې توكيل مطلق دې. لَكِنَّهُ يَتَقَيَّدُ بِالْمُتَعَارَفِ خو هغه متعارف سره مقيد دې. وَهُوَ فِيمَا قُلْنَا او متعارف هغه كې دې.كوم چې موږ اوونيل. وَلَكِنْ لَا بُدَّ أَنْ يَبْقَى مِنَ الْأَلْفِ بَاقِيَةٌ يَشْتَرِي بِمِثْلِهَا الْبَاقِي خو دا ضروري ده.چه په زر روپو كې دومره پاته وي.چه د هغې د مثل په عوض پاته غلام اخستلې كيداې شي. لِيُمْكِنَهُ تَحْصِيلُ غَرَضِ الْآمِرِ چې وكيل لپاره د موكل غرض حاصلول ممكن وي.

**تشريح:** دليل دادې.چه د موكل د اړخه دا توكيل مطلق دې.يعنې پنځه سوه روپو سره مقيد نه دې.البته متعارف او مروج سره مقيد دې.او رواج په دې كې دې.كوم چې موږ اوونيل.يعنې غبن يسير. مطلب دا دې .چه موكل د دوې (دوه) غلامانو چې ددوې قيمت برابر برابر دې.د زر روپو په عوض د اخستلو حكم اوكړو ګويا داسې ئې اوونيل. چې يو غلام تقريباً د پنځه سوه كم وبيش روپو وي.په عرف او رواج كې ددې مطلب داوی.كه د پنځه سوه روپو نه د دومره اندازه زياتي رقم په عوض واخستلې شو.په كوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې خلګ دهوكه كيږي.(دې ته غبن يسير وائي) نو په دې كې هيڅ حرج نشته.يعنې د غبن يسير په اندازه زياتي رقم به د موكل د حكم لاندې داخل وي.دې ته به د موكل د حكم خلاف ورزی نشی ونيلې كيدلې.خو دا ضروري ده.چه په زر روپو كې پاته پاتې رقم په دومره اندازه وي.چه د هغې په عوض دوهم غلام اخستلې كيداې شي.چه د موكل غرض حاصلول يعنې د زر روپو په عوض د دوې (دوه) غلامانو مالك كيدل ممكن شي.

**الفرق بين المذهبين:** د حضرت امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله د مذهب په منځ كې توپير دا شو.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز كه يو غلام د پنځه سوه روپو نه د دومره زياتي رقم په عوض واخلې.كوم ته چې غبن يسيرونيلې شي.نو دا اخستل به موكل باندې لازم وي.او كه د دومره قدرې زياتي رقم په عوض ئې واخستلو.كوم ته چې غبن فاحش ونيلې شي.نودا اخستل به موكل باندې لازم نه وي.بلكه په وكيل به لازم وي.او د امام صاحب رحمه الله په نيز د پنځه سوه روپو نه زياتي رقم د غبن فاحش په صورت كې وي.او كه د غبن يسير په صورت كې وي.په دواړو صورتونو كې به دا اخستل موكل باندې لازم نه وي.بلكه په وكيل به لازم

[1] القول الراجح هو قولهما كذا فى البحرالرائق (١٦٣\٧) والدرالمختار(٤٥١\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٥٦\٢)



وي.

## په قرضدار باندې د زرو روپو په عوض د معين غلام اخستلو حكم

قَالَ (وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ او د كوم كس چې په بل باندې زر روپۍ پور وي. فَأَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِهَا هَذَا الْعَبْدَ نو هغه قرضدار ته حكم وركړو.چه هغه د زر روپو په عوض دا غلام واخلی. فَاشْتَرَاهُ بيا قرضدار هغه واخستلو. جَازَ نودا جائز دي.

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې.چه د يوسړي په بل كس باندې زر روپۍ پور دي.نو قرضخواه قرضدار ته حكم وركړو.چه د هغه زر روپو په عوض فلانې معين غلام واخله.چه قرضدارې هغه متعين غلام واخستلو.نودا اخستل به موكل باندې لازم وي.كه موكل په دې غلام باندې قبضه اوكړي.او كه هغه غلام د موكل د قبضه كاوه نه وړاندې د وكيل په قبضه كې مړشي.

لِأَنَّ فِي تَعْيِينِ الْمَبِيعِ تَعْيِينَ الْبَائِعِ خكه چې د مبيع متعين كاوه كې د بائع تعيين هم كيږي. وَلَوْ عَيَّنَ الْبَائِعَ او كه بائع دا متعين كړې وو. يَجُوزُ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى نو جائز به وو.چه موږ به دا انشاءالله ذكر كړو.

**تشريح:** دليل دادې.چه دلته كې موكل مبيع يعنې غلام متعين كړې دې.او د مبيع متعين كاوه سره بائع هم متعين كيږي.او موكل كه بائع متعين كړي.نودا جائز دي.لكه روسته به ذكر شي.نوهم دغه ډول د مبيع متعين كاوه په صورت كې به هم بالاتفاق جائز وي.

## د غير معين غلام د وكيل په قبضه كښې هلاكيدل

(وَإِنْ أَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِهَا عَبْدًا بِغَيْرِ عَيْنِهِ اللَّهُ او كه قرضخواه قرضدار ته حكم وركړو.چه دې د پور په عوض غيرمعين غلام واخلی. فَاشْتَرَاهُ نو قرضدار هغه واخستلو. فَمَاتَ فِي يَدِهِ قَبْلَ أَنْ يَقْبِضَهُ الْآمِرُ او د قرضخواه (موكل) د قبضه كاوه نه وړاندې هغه غلام د قرضدار (وكيل) په قبضه كې مړشو. مَاتَ مِنْ مَالِ الْمُشْتَرِي نو هغه د مشترى (قرضدار) د مال نه مړ شوې دې. وَإِنْ قَبَضَهُ الْآمِرُ او كه موكل په دې باندې قبضه كړې وي. فَهُوَ لَهُ نوهغه د موكل لپاره دې. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله[1] اودا حكم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې.

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې.كه قرضخواه قرضدار ته حكم وركړو.چه كومې زر روپۍ زما په تا باندې دي.د هغې په عوض يو غلام واخله.او غلام ئې متعين نكړو.يعنې قرضخواه قرضدار د خپلې پور په عوض د يوغير معين غلام اخستلو وكيل كړو.او هركله چې غلام (مبيع) غيرمعين دې.نو بائع به هم غيرمعين وي.نو قرضدار يو غلام واخستلو.خو په دې غلام باندې لاتر اوسه قرضخواه (موكل) قبضه نه وه كړې.چه د قرضدار (وكيل) په قبضه كې دا غلام مړشو.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا غلام د مشترى (وكيل) د مال نه مړ وي.اود قرضخواه يعنې د موكل زر روپۍ په وكيل يعنې قرضدار باندې على حاله واجب وي.اوكه موكل يعنې قرضخواه په دې غلام باندې قبضه اوكړله.او بيا دغه غلام مړشو.نودا به د موكل د مال نه مړ وي.يعنې په وكيل (قرضدار) چې كومه قرضه وه.هغه به دده د ذمې نه ساقط وي.او ددې نقصان ذمه دار به موكل وي.خودا په دې وجه نه چې وكالت صحيح دې.بلكه په دې وجه چې د موكل په قبضه كاوه سره د موكل او وكيل په منځ كې بيع تعاطى منعقد شوې ده.او بيع تعاطى جائز ده.

وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمائي. هُوَ لَازِمٌ لِلْآمِرِ إِذَا قَبَضَهُ الْمَأْمُورُ) چې د موكل په ذمه به لازم وي.كله چې وكيل په دې باندې قبضه كړې وي. وَعَلَى هَذَا إِذَا أَمَرَهُ أَنْ يُسَلِّمَ مَا عَلَيْهِ او په دې اختلاف باندې دا دی.كله چې قرضخواه

[1] القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كما لا يخفى على ذى بصيرة قال المنفى غلام قادر مدظله العالى لكن العرف يقتضى ترجيح قولهما كذا فى القول الراجح (١٥٦\٢)

قرضدرا ته حکم اوکړو، چه کوم څه په تا باندې دی، د هغې بیع سلم اوکړه. **أَوْ يَصْرِفَ مَا عَلَيْهِ** یا بیع صرف اوکړه.

**تشریح:** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز حکم دادې، که وکیل (قرضدار) په غلام باندې قبضه اوکړله. نودا غلام به په مؤکل باندې لازم وی. یعنی مؤکل (قرضخواه) به ددې مالك وی. که مؤکل په دې باندې قبضه اوکړی. اوکه د وکیل په قبضه کې مړشی. یعنی په دواړو صورتونوکې به د وکیل (قرضدار) د ذمه نه قرضه ساقطیږی. امام شافعی او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی. حاصل داچه د امام صاحب رحمه الله په نیز دا توکیل صحیح نه دې. اود صاحبینو رحمهما الله په نیز صحیح دی.

هم دا اختلاف په هغه صورت کې دې. کله چې قرضخواه قرضدار ته حکم ورکړی. چه زما زر درهم کوم چې په تا پور دی. ته د هغې په عوض یو سړی سره د لس منه غنمو بیع سلم اوکړه. یا د هغه زر درهمو په عوض بیع صرف اوکړه. نود امام صاحب رحمه الله په نیز مسلم فیه او بدل صرف باندې قرضخواه (مؤکل) قبضه نه وی کړې بلکه د قرضدار (وکیل) په قبضه کې هلاك شوې وی. نودا به د وکیل (قرضدار) مال هلاك وی. او مؤکل (قرضخواه) په مسلم فیه او بدل صرف باندې قبضه کړې وی. نودا د مؤکل (قرضخواه) مال شو. اوس که دا هلاك شو. نود مؤکل مال به هلاك وی. او وکیل به د پور نه خلاص شی.

اود صاحبینو رحمهما الله په نیز مسلم فیه او بدل صرف باندې که وکیل (قرضدار) قبضه کړې وی. نو هغه به د مؤکل په ذمه لازم وی. اگر چې د مؤکل د قبضه کاوه نه وړاندې د وکیل (قرضدار) په قبضه کې هلاك شی. خو اختلاف په دې صورت کې دې. کله چې قرضخواه مسلم الیه او هغه سړې چا سره ئې چې د عقد صرف حکم کړې دې، متعین کړې نه وی. که قرضخواه هغه متعین کړې وی. نودا توکیل بالاتفاق صحیح دې. اود قرضدار (وکیل) اخستل به په مؤکل (قرضخواه) باندې لازم وی. که مؤکل په مسلم الیه او بدل صرف باندې قبضه اوکړی. یا د مؤکل دقبضه کاوه نه وړاندې د وکیل (قرضدار) په قبضه کې هلاك شی.

**لهما** صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. **أَنَّ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيرَ لَا يَتَعَيَّنَانِ فِي الْمُعَاوَضَاتِ دَيْنًا كَانَتْ أَوْ عَيْنًا،** چې په معاوضاتو کې دراهم او دنانیر متعین کاوه سره نه متعین کیږی. که عین وی. اوکه دین وی. **أَلَا يُرَى** آیا ته نه گورې. **أَنَّهُ لَوْ تَبَايَعَا عَيْنًا بِدَيْنٍ** که دوې (دوه) سړو د یو مال عین د پور په عوض بیع اوکړله. **ثُمَّ تَصَادَقَا أَنْ لَا دَيْنَ** بیا دواړو اتفاق اوکړو، چه هیڅ قرضه نه وه. **لَا يَبْطُلُ الْعَقْدُ** نو عقد به باطل نه وی. **فَصَارَ الْإِطْلَاقُ وَالتَّقْيِيدُ فِيهِ سَوَاءً** نو په دې معامله کې اطلاق او تقیید دواړه برابر شو. **فَيَصِحُّ التَّوْكِيلُ** نو توکیل به صحیح وی. **وَيَلْزَمُ الْآمِرَ** او عقد به د مؤکل په ذمه لازم وی. **لِأَنَّ يَدَ الْوَكِيلِ كَيَدِهِ** ځکه چې د وکیل قبضه د مؤکل د قبضې پشان ده.

**حل اللغة:** ① التقیید: مقید کول

**تشریح:** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې، چه دراهم او دنانیر په بیع وغیره عقد معاوضه کې متعین کاوه سره نه متعین کیږی. دراهم او دنانیر که دین وی. یعنی دچا په ذمه کې ثابت وی. اوکه عین وی. یعنی دچا په ذمه کې ثابت نه وی. بلکه عقد کونکی سره موجود وی. که شاهد اووئیل. چه زما زر درهم د خالد په ذمه پور دی. نو خالد قرضدار د پور په عوض خپل مال عین مثلاً سل دینار د قرضخواه په لاس خرځ کړل. بیا دواړو کې اتفاق اوشو. چه د شاهد په خالد باندې هیڅ قرضه نه وه. نود شاهد او خالد په منځ کې به مذکوره عقد باطل نه وی. بلکه په شاهد به د پور مثل یعنی زر درهم واجب وی. اوگورئ. که دراهم او دنانیر متعین کاوه سره متعین کیدلې. نود خالد په ذمه دین نه کیدلو باندې د اتفاق په صورت کې به مذکوره عقد باطلیدلو. ځکه چې په عقد کې کوم دراهم د دین په صورت کې متعین کړی وو. هغه پاته پاتې نشو. حالانکه دلته عقد نه باطلیږی. نو ثابته شوه. چه دراهم او دنانیر دین وی. اوکه عین وی. په عقد معاوضه کې متعین کاوه سره نه متعین کیږی. اوکوم شئ چې متعین کاوه سره نه متعین کیږی. هغې کې اطلاق او تقیید دواړه برابر دی.

د اطلاق صورت دادې، چه قرضخواه قرضدار ته دا اووائی، چه زما لپاره د یو زر درهمو په عوض یو غلام واخله او دا زر درهم هغه پور اړخ ته منسوب نکړی. کومه قرضه چې په قرضدار باندې واجب ده. اود تقیید



صورت دادې، چه زر درهم پور اړخ ته منسوب کړی. مثلاً قرضخواه اووائی، چه زما لپاره یو غلام دهغه زر درهمو په عوض واخله. کوم زر درهم چې زما په تا باندې واجب دی. نو هرکله چې دراهم او دنانیر متعین کاوه سره نه متعین کیږی. او کوم شئ چې متعین کاوه سره نه متعین کیږی. هغې کې اطلاق او تقیید دواړه برابر دی. نود قرضخواه خپل قرضدرا ته دا وئیل، چه ته زما لپاره یو غلام دهغه زر درهمو په عوض واخله. کوم چې زما په تا باندې واجب دی. اودا وئیل، چه چې د زر درهمو په عوض واخله. دواړه برابر دی. اوکه قرضخواه دا اووائی. چه ته زما لپاره د زر درهمو په عوض یو غلام واخله. اودا هغه زر درهمو پور اړخ ته منسوب نکړی. نودا توکیل بالاتفاق صحیح دې. نوکه زر درهم ئې پور اړخ ته منسوب کړل. نو په دې صورت کې به هم توکیل صحیح وی. او هرکله چې په دې صورت کې توکیل صحیح دې. نود وکیل یعنی د قرضدار اخستل به مؤکل یعنی قرضخواه باندې لازم وی. نوکه غلام د قرضخواه (مؤکل) د قبضه کاوه نه وړاندې د وکیل (قرضدار) په قبضه کې مړشو. نودا به دمؤکل د مال نه مړ وی. یعنی ددې غلام مړکیدل به د مؤکل (قرضخواه) نقصان شمارلې شی. د وکیل نقصان به نشی شمارلې. ځکه چې دوکیل قبضه د مؤکل د قبضې په مرتبه کې وی. یعنی د وکیل په قبضه کې د غلام مړکیدل داسې دی. لکه چې د مؤکل په قبضه کې مړشوې وی. اود مؤکل په قبضه کې د مړکیدلو په صورت کې د مؤکل نقصان شمارلې کیږی. د وکیل نه شمارلې کیږی. اودا داسې شوه. لکه چې قرضخواه قرضدار ته دا اووائی. چه زما کومه قرضه په تا ده. نو هغه په مسکینانو باندې صدقه کړه. نودا جائز ده. دغه ډول که ددغه پور په عوض د غلام اخستلو حکم ورکړی. نودا به هم جائز وی.

**وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ** اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. **أَنَّهَا تَتَعَيَّنُ فِي الْوَكَالَاتِ** چې دراهم او دنانیر په وکالتونو کې متعین کیږی. **أَلَا تَرَى** آیا ته نه گورې. **أَنَّهُ لَوْ قَيَّدَ الْوَكَالَةَ بِالْعَيْنِ مِنْهَا** که په دراهمو او دنانیرو کې ئې عین سره مقید کړې دی. **أَوْ بِالدَّيْنِ مِنْهَا** یا ئې دراهم او دنانیروکې پور سره مقید کړې دی. **ثُمَّ اسْتَهْلَكَ الْعَيْنَ** بیا ئې عین هلاك کړو. **أَوْ أَسْقَطَ الدَّيْنَ** یا ئې قرضه ساقط کړله. **بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ** نو وکالت باطلیږی.

**حل اللغة:** ① الاستهلاک: هلاکول ② اسقط: ساقط کړو

**تشریح:** په اصل مسئله باندې د امام ابوحنیفه رحمه الله د دلیل حاصل دادې، چه په وکالتونوکې دراهم او دنانیر وکیل اړخ ته د سپارلو نه روسته متعین کیږی. هم دا وجه ده. که مؤکل په دراهم او دنانیروکې عین دراهمو سره وکالت مقید کړو. یعنی مؤکل په لاس کې دراهم واخستل. او وکیل ته ئې اوخودل. او هغه ته ئې اوسپارل. یا ئې وکالت په دراهمو او دنانیروکې دین سره مقید کړو. یعنی دا ئې اووئیل. چه کوم دراهم او دنانیر چې زما په تا باندې دی. د هغې په عوض غلام واخله. لکه څنگه چې د متن په مسئله کې دی. بیا عین دراهم مؤکل یا وکیل هلاك کړل. یا مؤکل وکیل د دین او پور نه بری کړو. نودا وکالت به باطل وی. نود دراهم او دنانیرو هلاکیدلو په وجه د وکالت باطلیدل ددې خبرې دلیل دې، چه په وکالت کې دراهم او دنانیر متعین کیږی. ځکه که دراهم او دنانیر نه متعین کیدلې. نو وکالت به نه باطلیدلو. خود مؤکل د هلاکیدلو په صورت کې مؤکل باندې نور دراهم اداکول لازمیږی. اود وکیل د هلاکاوه په صورت کې به وکیل ذمه دار وو.

**الغرض من عبارة المتن**⊙ نود متن د مسئلې مطابق د قرضخواه قرضدار ته دا حکم ورکول، چې زما په تا باندې کومه قرضه ده. د هغې په عوض یو غلام واخله. ددې مطلب دادې، چه قرضخواه د قرضدار نه علاوه یعنی د غلام مالك ددې پور مالك کړې دې. حالانکه قرضخواه د غلام مالك په دې قرضه باندې د قبضه کاوه مالك کړې نه دې. او ځکه چې د غلام مالك د پور مالك جوړول ناجائز دی. اودا ځکه ناجائز دی، چه قرضخواه د غلام مالك د قرضدار په ذمه د واجب شوی رقم مالك جوړ کړې دې. حالانکه هغه (قرضخواه) د غلام مالك اړخ ته ددغه رقم په سپارلو باندې قادر نه دې. او انسان چې د کوم شئ په سپارلو باندې قادر نه

وی.هغه ته د هغه شی د بل په ملکیت کي د سپارلو اجازت هم نه وی.نو قرضخواه لپاره به د غلام مالك د پور د رقم مالك جوړول هم جائز نه وی.او هرکله چي دا جائز نه ده.نو د قرضخواه لپاره به دا هم جائز نه وی. چي قرضدار د هغه د پور په عوض د غلام اخستلو وکیل جوړ کړی.او هرکله چي دا توکیل جائز نه دي.نود وکیل د غلام اخستلو نه روسته که دغه غلام د وکیل په قبضه کي مړشو.او مؤکل لا تراوسه قبضه نه ده کړي.نودا غلام به د وکیل د مال نه مړوی.ځکه چي د توکیل د نه صحیح کیدلو په وجه اخستل مؤکل لپاره نشو.بلکه وکیل لپاره شو.او هرکله چي اخستل وکیل لپاره شو.نو وکیل به د نفع نقصان ذمه دار وی.مؤکل به نه وی.خو کله چي مؤکل په دي غلام باندي قبضه اوکړی.نو مؤکل به مالك وی. خو په دي وجه به مالك نه وی چي توکیل صحیح دي.اود قرضدار اخستل قرضخواه ( مؤکل) لپاره دی.بلکه په دي وجه به مالك وی.چه هرکله وکیل ( قرضدار) غلام قرضخواه ( مؤکل) ته اوسپارلو.او قرضخواه په دي باندي قبضه اوکړله.نودا د قرضخواه او قرضداری په منځ کي بیع تعاطی شوه.اود بیع تعاطی په نتیجه کي قرضخواه ددي غلام مالك شوي دي.

| **وَإِذَا تَعَيَّنَتْ كَانَ** نوهرکله چي دراهم او دنانیر ( په وکالت کي ) متعین شو.**هَذَا تَمْلِيكُ الدَّيْنِ مِنْ غَيْرِ مَنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ مِنْ دُونِ أَنْ يُوَكِّلَهُ بِقَبْضِهِ** دا د قرضدار نه علاوه د پور مالك کول شو.بغیرددي نه چي هغه د قبضه کاوه وکیل جوړ کړی.**وَذَلِكَ لَا يَجُوزُ** نوحالانکه داخبره جائز نه ده. |
|---|

**تشریح:** دامام ابوحنیفه رحمه الله د دلیل لاندي صاحب دهدایه رحمه الله فرمانی.چه د متن په مسئله کي ذکرشوي توکیل نه یا خو «تمليك الدين من غير من عليه الدين من أن يوكله بقبضه» لازمیږی.اودا ناجائز دی.او یا به دا لازمیږی چي قرضخواه تراوسه پوري د پور په رقم باندي قبضه نه ده کړي.خو قرضخواه قرضدار ته حکم ورکړی.چه هغه د پور رقم د غلام بائع ته ورکړی.حالانکه د قرضخواه قرضدار ته دا حکم ورکول.چه هغه د پور رقم بائع ته ورکړی.دداسي شی حکم کول دی.د کوم چي قرضخواه مالك نه دي.ځکه چي قرضخواه د قبضي نه روسته د پور د رقم مالك کیږی.د قبضه نه مخکي نه مالك کیږی.او وجه ددي داده.چه د پور ادا کاوه بامثالها کیږی.باعیانها نه کیږی.یعنی قرضدار بعینه هغه دراهم نه واپس کوی.کوم دراهم چي هغه اخستي وو.بلکه د هغي مثل نور دراهم واپس کوی.او په نورو دراهمو چي کوم وخته پوري قرضخواه قبضه اونکړی.د قرضدار مملوك وی.د قرضخواه مملوك نه وی.نو قرضخواه چي کوم دراهم بائع ته نه ورکوی.هغه به پخپله دهغه مملوك وی.قرضخواه به د هغي مالك نه وی.

| **كَمَا إِذَا اشْتَرَى بِدَيْنٍ عَلَى غَيْرِ الْمُشْتَرِي** لکه مثلاً یو کس د داسي پور په عوض اخستل اوکړل.کومه قرضه چي د مشتری نه په علاوه باندي ده.**أَوْ يَكُونُ أَمْرًا بِصَرْفِ مَا لَا يَمْلِكُهُ إِلَّا بِالْقَبْضِ قَبْلَهُ** یا به دداسي مال صرف کاوه حکم وی.د کوم چي دي مالك نه دي.خودا چي د حکم کاوه نه وړاندي قبضه اوکړی. **وَذَلِكَ بَاطِلٌ** حالانکه دا باطل دي.**كَمَا إِذَا قَالَ أَعْطِ مَالِي عَلَيْكَ مَنْ شِئْتَ** لکه کله چي اووانی.زما کوم مال چي په تا دي.ته چي چاته غواړي.ورکړله. |
|---|

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی.چه د «تمليك الدين من غير من عليه الدين من غير أن يوكله بقبضه» مثال دا دي.چه یو سړی دداسي پور په عوض څه شی واخستلو.کومه قرضه چي د مشتری نه په علاوه ده.صاحب د عنایه رحمه الله ددي صورت دا بیان کړي دي.چه د زید د عمرو په ذمه پور دي.بیا زید بکر خپل وکیل بالشراء مقررکړو.او وي وئیل.چه ته زما د هغه پور په عوض کومه چي په عمرو باندي ده.د عمرو نه علاوه د بل یو سړی نه یو کتاب واخله.او راوړه.نو دا ناجائز دی.ځکه چي په دي صورت کي وکیل د کتاب اخستل د داسي پور په عوض کړی دی.کومه قرضه چي د مشتری ( وکیل) نه علاوه په عمرو باندي ده.او په دي صورت کي دا لازمیږی.چه قرضخواه یعنی زید د پور مالك د قرضدار یعنی عمرو نه علاوه یعنی بکر



وکیل جوړ کړي دي.اودا ناجائز دی.لکه څنګه چي په تیرو شوو کرخو کی ددي دلیل ذکر شوي دي.

| **بِخِلَافِ مَا إِذَا عَيَّنَ الْبَائِعَ** ددي په خلاف کله چي مؤکل بائع معین کړي وی.**لِأَنَّهُ يَصِيرُ وَكِيلًا عَنْهُ فِي الْقَبْضِ** ځکه چي بائع به ( اولاً) د مؤکل د اړخه د قبضه کاوه وکیل وی.**ثُمَّ يَتَمَلَّكُهُ** بیا به هغه ددي مالك جوړیږی. |
|---|

**تشریح:** دي عبارت سره مصنف دهدایه رحمه الله فرمانی.که مؤکل یعنی قرضخواه بائع متعین کړو.مثلاً قرضخواه قرضدار ته دا اووئیل.چه ته ددي پور په عوض فلانی سړی نه غلام واخله.او راوله.نودا توکیل د امام صاحب رحمه الله په نیز هم صحیح دي.او مؤکل لپاره لازم دي.که مؤکل په ده باندي قبضه اوکړی.او که اونکړی.ځکه چي په دي صورت کي به بائع د قرضخواه د اړخه اولاً قرضه باندي د قبضه کاوه وکیل وی.بیا د بائع کیدلو په وجه به ددي مالك شی.او هرکله چي داسي ده.نو په ذکرشوی دوي (دوه) خرابیانو ( تمليك الدين من غير عليه الدين» او «امرا بصرف مالا يملكه» کي به هیڅ خرابی نه لازمیږی.اوهرکله چي په دي صورت کي په ذکرشوی دواړه خرابیانوکي هیڅ خرابی نه لازمیږی.نو توکیل به هم صحیح وی.او هرکله چي توکیل صحیح دي.نو اخستل به مؤکل باندي نافذ وی.که مؤکل په دي باندي قبضه اوکړی.او که اونکړی.

| **وَبِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَهُ بِالتَّصَدُّقِ** اوددي په خلاف کله چي مؤکل قرضدار ته ددي مال صدقه کولوحکم ورکړي وی.**لِأَنَّهُ جَعَلَ الْمَالَ لِلَّهِ** ځکه چي ده مال د الله تعالی لپاره کړو.**وَهُوَ مَعْلُومٌ** او هغه معلوم دي. |
|---|

**تشریح:** دي عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د قیاس ځواب دي.د صاحبینو رحمهما الله قیاس اګرچه په هدایه کي ذکر نه دي.خو احقرشاه فیصل د صاحبینو رحمهما الله د دلیل په آخرکي ذکرکړي دي. حاصل د ځواب دادي.چه هرکله قرضخواه قرضدار ته دا اووئیل.چه زما کوم مال په تا دي.ته هغه په مسکینانو باندي صدقه کړه.نو ګویا ده مال د الله لپاره مقررکړو.او مسکین د هغه نائب دي.او الله تعالی معلوم هم دي.نودا داسي شوه.لکه چي قرضخواه ( مؤکل) بائع متعین کړي وی.اود بائع متعین کاوه په صورت کي توکیل صحیح کیږی.نود صدقه کاوه لپاره به توکیل هم صحیح وی.

| **وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ التَّوْكِيلُ** اوهرکله چي توکیل نه صحیح کیږی.**نَفَذَ الشِّرَاءُ عَلَى الْمَأْمُورِ** نو اخستل به وکیل باندي نافذ وی.**فَيَهْلِكُ مِنْ مَالِهِ إِلَّا إِذَا قَبَضَهُ الْآمِرُ مِنْهُ** او غلام به هم دده د مال نه هلاك وی.خوکله چي مؤکل د وکیل د اړخه قبضه کړی.**لِانْعِقَادِ الْبَيْعِ تَعَاطِيًا** ځکه چي بیع تعاطی منعقد شوي ده. |
|---|

**حل اللغة:** ① تعاطی:یوبل ته ورکول

**تشریح:** سره علامه مرغینانی رحمه الله د امام صاحب رحمه الله د دلیل تتمه ذکر کوی. یعنی هرکله چي قرضدار ته د پور په عوض د غرمعین غلام اخستلو حکم کاوه سره په مذکوره دواړه خرابیانو «تمليك الدين.....الخ» او «أمرا بصرف مالا يملكه» کي هیڅ یوه خرابی نه لازمیږی.نودا توکیل یعنی د قرضخواه قرضدار ته د غیرمعین غلام اخستلو حکم کول به هم صحیح نه وی.او هرکله چي دا توکیل صحیح نه دي.نود وکیل یعنی د قرضدار اخستل به پخپله وکیل باندي نافذ وی.اود غلام هلاکیدلو په صورت کي به نه د وکیل یعنی قرضدار مال ضائع وی.نه به د مؤکل یعنی قرضخواه مال ضائع وی.البته که مؤکل یعنی قرضخواه په دي غلام باندي د وکیل یعنی د قرضدار د اړخه قبضه اوکړله.نودا به د قرضخواه او قرضدار په منځ کي بیع تعاطی منعقد وی.اود بیع تعاطی په وجه به قرضخواه ( مؤکل) ددي غلام مالك وی.اود نفع نقصان به ذمه وار وی.

### وکیل ته د سپارلی شوی رقم په صورت کښي د وینځی په قیمت کښي اختلاف

**قَالَ (وَمَنْ دَفَعَ إِلَى آخَرَ أَلْفًا)** اوکه یوسړی بل کس ته زر درهم ورکړل.**وَأَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ بِهَا جَارِيَةً** هغه ته ئې حکم ورکړو.چه هغه ددي په عوض یوه وینځه واخلی.**فَاشْتَرَاهَا** نو وکیل وینځه واخستله.**فَقَالَ الْآمِرُ** بیا مؤکل

اوونیل.**اشْتَرَيْتُهَا بِخَمْسِمِائَةٍ**. چې دا تا د پنځه سوه روپو په عوض اخستې ده.**وَقَالَ الْمَأْمُورُ اشْتَرَيْتُهَا بِأَلْفٍ** او وکیل اوونیل.چه ما دا د زر درهمو په عوض اخستې ده.**فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَأْمُورِ** نود وکیل قول به قبول وی.

**تشریح:** ذکر شوې متن د جامع صغیر دې.ددې صورت دادې.چه یوسړی بل کس ته زر درهم ورکړل.او حکم نې اوکړو.چه هغه ددې دراهمو په عوض یوه وینځه واخلی.وکیل وینځه واخستله.بیا مؤکل اوونیل.چه تا دا وینځه د پنځه سوه درهمو په عوض اخستې ده.او وکیل اوونیل.چه ما دا وینځه د زر درهمو په عوض اخستې ده.نو په دې صورت کې به د وکیل قول معتبر وی.

**وَمُرَادُهُ إِذَا كَانَتْ تُسَاوِي أَلْفًا** اود امام محمد رحمه الله مراد دادې.چه کله وینځه د زر درهمو دمالیت برابر وی.**لِأَنَّهُ أَمِينٌ فِيهِ** خکه وکیل په دې کې امین دې.**وَقَدِ ادَّعَى الْخُرُوجَ عَنْ عُهْدَةِ الْأَمَانَةِ** او هغه د امانت د عهدې نه د وتلو دعوه کړې ده.**وَالْآمِرُ يَدَّعِي عَلَيْهِ ضَمَانَ خَمْسِمِائَةٍ** او مؤکل د پنځه سوه درهمو د ضمان دعوه کوی.**وَهُوَ يُنْكِرُ** او وکیل د هغې منکر دې.

**حل اللغة:** ① العهدة: ذمه واری ② ضمان: تاوان

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په متن کې دامام محمد رحمه الله مراد دادې.چه مذکوره حکم هغه وخت دې.کله چې د اخستې شوې وینځې مالیت د زر درهمو مساوی او برابر وی.یعنی که د وینځې قیمت هم زر درهم دی.اود وکیل وئیل هم دا دی.چه ما د زر درهمو په عوض اخستې ده.نود وکیل قول به معتبر وی.

**دلیله** دلیل دادې.چه په دې معامله کې وکیل امین دې.اود امانت د عهدې نه د وتلو او خلاصیدلو دعوه کوی. اود عهدة امانت نه په وتلو کې چونکه د امین قول متعبر وی.خکه به دلته کې هم د امین یعنی د وکیل قول معتبر وی.او په دې مسئله کې مؤکل په وکیل باندې د پنځه سوه درهمو د ضمان دعوه کوی.یعنی دعوه کوی.چه تا د پنځه سوه درهمو په عوض وینځه اخستې ده.او پاته پنځه سوه درهم ستا په ذمه واجب دی.او وکیل ددې ضمان منکر دې.او مدعی سره د بینه نه کیدلو په صورت کې چونکه د منکر قول معتبر وی.او دلته کې هم دا فرض کړې شوی دی.چه مدعی یعنی مؤکل سره بینه موجود نه دی.خکه به د منکر یعنی د وکیل قول به مع الیمین معتبر وی.

**فَإِنْ كَانَتْ تُسَاوِي خَمْسَمِائَةٍ** او که وینځه د پنځه سوه درهمو د مالیت برابر وی.**فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ** نود مؤکل قول به معتبر وی.**لِأَنَّهُ خَالَفَ حَيْثُ اشْتَرَى جَارِيَةً تُسَاوِي خَمْسَمِائَةٍ** خکه چې وکیل د مؤکل د حکم مخالفت کړې دې.خکه چې وکیل د پنځه سوه درهمو د مالیت برابر وینځه اخستې ده.**وَالْأَمْرُ تَنَاوَلَ مَا يُسَاوِي أَلْفًا فَيَضْمَنُ** اود مؤکل حکم هغې ته گډ دې. کومه چې د زر درهمو د مالیت برابر وی.نو وکیل به ضامن وی.

**تشریح:** او که د وکیل اخستې شوې وینځه د پنځه سوه درهمو د مالیت برابر وی.او بیا دا اختلاف وی.چه مؤکل وائی.چه تا په پنځه سوه درهم اخستې ده.او وکیل وائی.چه ما د یو زر درهم په عوض اخستې ده.نو په دې صورت کې به د مؤکل قول معتبر وی.

**أدلیله** ① وکیل د مؤکل د حکم مخالفت کړې دې.په دې طریقه چې مؤکل هغه ته حکم ورکړې وو.چه د زر درهمو په عوض داسې وینځه واخله.چه د هغې مالیت او قیمت هم د زر درهمو د مالیت برابر وی.خو وکیل د زر د رهمو عوض مالیت او قیمت هم د یو زر درهمو برابر وی.خو وکیل د زر درهمو په عوض داسې وینځه واخستله.چه دهغې مالیت د پنځه سوه درهمو د مالیت برابر دې.نو وکیل د خپل مؤکل داسې مخالفت کړې دې چه په دې کې د مؤکل نقصان دې.او په کومو اخستلو کې چې د وکیل دا ړخه د مؤکل د حکم مخالفت وی.او په دغه مخالفت کې د مؤکل نقصان هم وی.نو هغه اخستل به پخپله وکیل لپاره وی.مؤکل لپاره به نه وی.نود وینځې دا اخستل به وکیل لپاره وی.او وکیل به مؤکل لپاره ضامن وی.



② هر کله وکیل د پنځه سوه درهمو د مالیت وینځه د زر درهمو په عوض واخستله.نودا اخستل غبن فاحش سره اوشوه.او غبن فاحش سره داخستلو په صورت کې اخستل وکیل لپاره وی.مؤکل لپاره نه وی.او هر کله چې دا اخستل وکیل لپاره دی.نو وکیل به مؤکل لپاره ضامن وی.

### وکیل ته د رقم نه سپارلو په صورت کښې د وینځې په قیمت کښې اختلاف

قَالَ **وَإِنْ لَمْ يَكُنْ دَفَعَ إِلَيْهِ الْأَلْفَ** او که مؤکل وکیل ته زر درهم نه وی ورکړې.**فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ** نود مؤکل قول به قبول وی.**أَمَّا إِذَا كَانَتْ قِيمَتُهَا خَمْسَمِائَةٍ** بهرحال هر کله چې د وینځې قیمت پنځه سوه درهم وی.**فَلِلْمُخَالَفَةِ** نود مخالفت په وجه.

**تشریح:** په تیره شوې مسئله کې دوهم صورت دادې.چه مؤکل وکیل ته زر درهم ورنکړل.او وکیل وینځه واخستله.بیا په دواړو کې اختلاف اوشو.مؤکل اوونیل.چه تا دا وینځه د پنځه سوه درهم په عوض اخستې ده.او وکیل اوونیل.چه ما د زر درهمو په عوض اخستې ده.نود مؤکل قول به معتبر وی.که د وینځې قیمت پنځه سوه درهم وی.

**وجه اعتبار قول المؤکل في صورة خمسة مائة** اود مؤکل قول به خکه معتبر وی.چه د وکیل د اړخه د مؤکل د حکم مخالفت موجود شوې دې.خکه چې مؤکل د زر درهمو په عوض ددا سې وینځې اخستلو حکم ورکړې وو.چه دهغې مالیت او قیمت زر درهم وی.او هغه داسې وینځه اخستې ده.چه دهغې مالیت پنځه سوه درهم دی.اود وکیل د اړخه غبن فاحش هم متحقق شو.چه د پنځه سوه درهمو مال نې په یو زر درهمو اخستې دې.او په دې دواړو صورتونو کې به اخستل وکیل باندې نافذ وی.په مؤکل به نه وی.نو د مؤکل قول به معتبر وی.اود وینځې اخستل به وکیل لپاره وی.مؤکل لپاره به نه وی.

**وَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهَا أَلْفًا** او که ددې قیمت زر درهم وی.**فَمَعْنَاهُ أَنَّهُمَا يَتَحَالَفَانِ** نو ددې مطلب دادې.چه وکیل او مؤکل دواړه به قسم خوری.**لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ وَالْوَكِيلَ فِي هَذَا يَنْزِلَانِ مَنْزِلَةَ الْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِي** خکه چې وکیل او مؤکل دواړه په دې صورت کې د بائع او مشتری په مرتبه کې دی.**وَقَدْ وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي الثَّمَنِ** او په ثمن کې اختلاف واقع شوې دې.**وَمُوجِبُهُ التَّحَالُفُ**. او ددې حکم خپل منځ کې قسم اخستل دی.**ثُمَّ يَفْسَخُ الْعَقْدُ الَّذِي جَرَى بَيْنَهُمَا** بیا هغه عقد کوم چې ددوی دواړو په منځ کې جاری شوې دې.فسخ به شی.**فَتَلْزَمُ الْجَارِيَةُ الْمَأْمُورَ** او وینځه به د وکیل په ذمه لازم وی.

**وجه التحالف في صورة الالف** او که د وینځې مالیت او قیمت زر درهم وی.د مؤکل د قول متعبر کیدلو مطلب دادې.چه مؤکل او وکیل دواړه به قسم خوری.خکه چې د مؤکل او وکیل په منځ کې حکماً مبادله وی.په دې طریقه چې وکیل مؤکل ته مبیع ورکوی.او مؤکل وکیل ته ثمن ورکوی.نو مؤکل او وکیل دواړه به د بائع او مشتری په مرتبه کې وی. یعنی وکیل به د بائع په مرتبه کې وی.او مؤکل به د مشتری په مرتبه کې وی.او د دواړو په منځ کې به ثمن کې اختلاف وی.چه وکیل یعنی مشتری اوونیل.چه د وینځې ثمن پنځه سوه درهم دی.او وکیل یعنی بائع اوونیل.چه د وینځې ثمن زر درهم دی.اود بائع او مشتری په منځ کې په ثمن کې د اختلاف حکم دادې.چه د دواړو نه قسم واخستلې شی.که دواړه قسم اوخوری.نو دا عقد به فسخ کړې شی.نو دلته کې هم که وکیل او مؤکل دواړه قسم اوخوری.نو هغه عقد حکمی کوم چې د مؤکل او وکیل په منځ کې منعقد شوې دې.هغه به فسخ کولې شی.او هر کله چې دمؤکل او وکیل په منځ کې عقد حکمی فسخ شو.نودا وینځه به د وکیل په سر وی.یعنی وکیل به ددې مالك وی.مؤکل به نه وی.نود نتیجې په طور په دې صورت کې به هم د مؤکل قول معتبر وی.

### د ثمن نه بیانولو په صورت کښې د غلام په قیمت کښې اختلاف

قَالَ **(وَلَوْ أَمَرَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ لَهُ هَذَا الْعَبْدَ)** او که مؤکل وکیل ته حکم اوکړو.چه دده لپاره دا غلام واخله.**وَلَمْ يُسَمِّ لَهُ ثَمَنًا**

او دهغې ثمن نې بیان نکړو. فَاشْتَرَاهُ نو وکیل هغه غلام واخستلو. فَقَالَ الْآمِرُ اشْتَرَيْتَهُ بِخَمْسِمِائَةٍ بیا مؤکل اووئیل چه تا دا د پنځه سوه درهمو په عوض اخستې دې. وَقَالَ الْمَأْمُورُ بِأَلْفٍ او وکیل اووئیل چه د زر درهمو په عوض، وَصَدَّقَ الْبَائِعُ الْمَأْمُورَ او بائع د وکیل تصدیق اوکړو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَأْمُورِ مَعَ يَمِينِهِ نو مع اليمين به د وکیل قول قبول وی.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې چه مؤکل وکیل ته د یو معین غلام اخستلو حکم ورکړو.خو دغه غلام ثمن نې بیان نکړو.نو وکیل دغه غلام واخستلو بیا د مؤکل او وکیل په منځ کې د ثمن په مقدار کې اختلاف واقع شو.مؤکل خپل وکیل ته اووئیل.چه تا دا غلام په پنځه سوره روپۍ اخستې دې.او وکیل اووئیل.چه جناب داسې نه ده.بلکه ما دا غلام په زر روپۍ اخستې دې.اود غلام بائع هم د وکیل د قول تصدیق اوکړو.نود وکیل قول به مع اليمين معتبر وی.

قِيلَ وئیلی شوی دی.لَا يَتَحَالَفَانِ هَاهُنَا، چې دلته کې خپل منځ کې قسم نشته.لِأَنَّهُ ارْتَفَعَ الْخِلَافُ بِتَصْدِيقِ الْبَائِعِ،ځکه چې د بائع په تصدیق سره اختلاف ختم شو.إِذْ هُوَ حَاضِرٌ وَفِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى هُوَ غَائِبٌ،ځکه چې بائع حاضر دې.او په ړومبۍ مسئله کې بائع غائب وو.فَاعْتُبِرَ الِاخْتِلَافُ په دې وجه اختلاف معتبر شو.

**تشریح:** مصنف د هدایه رحمه الله فرمائی.چه د بعض مشائخو مثلاً د فقیه ابوجعفر هندوانی قول دادې.چه په دې مسئله کې تحالف نشته.یعنی مؤکل او وکیل دواړو ځخه به قسم نشی اخستې.اود دواړو په منځ کې واقع کیدونکې عقد حکمی به نشی فسخ کولې.لکه ځنګه چې په تیره شوې مسئله کې د تحالف نه روسته عقد حکمی فسخ کړې شوې وو.

**دلیله**: د غلام بائع د وکیل د قول تصدیق کړې دې.او په مسئله کې بائع هم موجود دې. ځکه به د هغه تصدیق معتبر وی.او هرکله چې د بائع تصدیق کول معتبر دی.نو دده د تصدیق کاوه په وجه به د مؤکل او وکیل په منځ کې واقع شوې اختلاف لرې کیږی.نود غلام د بائع او وکیل دواړو د ثمن په مقدار یعنی زر درهمو باندې اتفاق کول به د انشاء عقد په مرتبه کې وی.یعنی داسې به وی.لکه چې د غلام بائع او وکیل په منځ کې اوس اوس د زر روپو په عوض د سره دوباره بیع منعقد شوې دې.اوکه د غلام په منځ کې د زر روپو په عوض انشاء د عقد کیدله.یعنی دوباره د سره بیع منعقد کیدله.نودا بیع په مؤکل باندې لازم وه.نو دغه ډول دلته کې هم د اختلاف په صورت کې د وکیل قول معتبر وی.اود غلام بیع به په مؤکل باندې لازم او نافذ وی.او په تیره شوې مسئله کې چونکه بائع موجود نه دې.په دې وجه د هغه د تصدیق کاوه سوال هم نه پیدا کیږی.او هرکله چې د بائع د اړخه د وکیل د قول تصدیق اونه موندې شو.نود وکیل او مؤکل په منځ کې د ثمن په مقدار کې اختلاف معتبر وی.او تحالف به واجب وی.ځکه چې د ثمن په مقدار کې داختلاف حکم هم دادې. چې د دواړو نه قسم واخستې شی.او عقد فسخ کړې شی.لکه ځنګه چې ددې تفصیل تیرشوې دې.

وَقِيلَ او وئیلی شوی دی.يَتَحَالَفَانِ كَمَا ذَكَرْنَا(1) چې دواړه به قسم خوری.د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې.

**تشریح:** اوبعض مشائخ مثلاً ابومنصور ماتوریدی رحمه الله فرمائی.چه د تیره شوې مسئلې پشان به دې کې هم تحالف واجب وی.په مخکنی دلیل کې تیر شوی دی.چه مؤکل او وکیل دواړه د بائع او مشتری په مرتبه کې دی.او د دواړو په منځ کې د ثمن په مقدار کې داختلاف حکم تحالف دې.نو په دې مسئله کې به هم د وکیل

(1) القول الراجح هذا اعنى القول الثانى كذا فى ملتقى الأبحر(٣٢٣\٣) ومجمع الأنهر(٣٢٣\٣) والبحر(١٦٥\٧) وتبيين الحقائق (٢٦٨\٤) نقلاً عن القول الراجح (١٥٨\٢)



او مؤکل دواړو نه قسم اخستلې شی.او ددوی دواړو په منځ کې واقع شوی عقد حکمی به فسخ کولې شی.او ددې فسخ نتیجه به دا وی.چه اخستې شوې غلام به مؤکل لپاره نه وی.بلکه وکیل لپاره به وی.

وَقَدْ ذَكَرَ مُعْظَمَ يَمِينِ التَّحَالُفِ وَهُوَ يَمِينُ الْبَائِعِ او امام محمد رحمه الله په په تحالف (یو تربله قسم خوړلو) کې د ټولو نه لوئې کوم دلیل چې ذکر کړې دې.هغه د بائع قسم دې.

**تشریح:** دې عبارت سره د یو سوال ځواب دې.سوال دادې.چه د جامع صغیر په متن «ولو أمره أن يشترى هذا العبد ولم يسم له ثمناً......الخ» کې امام محمد رحمه الله دا تصریح فرمائیلې ده.چه د وکیل قول به مع اليمين معتبر وی.او شیخ ابومنصور رحمه الله فرمائی.چه تحالف به واجب وی.حالانکه تحالف د امام محمد رحمه الله د بیان شوی تصریح مخالف دې.ځکه چې په تحالف کې د وکیل او مؤکل دواړو نه قسم اخستلو سره ددوی دواړوپه منځ کې واقع شوې عقد حکمی فسخ کولې شی.دامام محمد رحمه الله تصریح داده.چه د وکیل نه قسم واخستلې شی.او دده قول معتبر اومنلې شی؟

ځواب•ددې ځواب دادې.چه په ذکرشوې مسئله کې وکیل د بائع په مرتبه کې دې.او مؤکل د مشتری په مرتبه کې دې.او په تحالف کې اګرچه په بائع او مشتری دواړو باندې قسم واجبیږی.خود بائع قسم اهم او اعظم دې.اود بائع قسم ځکه أعظم او لوئې وی.چه د ثمن د مقدار په اختلاف کې بائع مدعی وی.او مشتری منکر وی.او په مدعی صرف د تحالف په صورت کې قسم واجبیږی.ددې نه په علاوه کې په ده باندې قسم نه واجبیږی.او پاتې شو منکر،نو په ده باندې هرحال کې قسم واجبیږی.یعنی د تحالف په صورت کې هم.او دتحالف نه په علاوه کې هم.بهرحال د بائع یعنی د وکیل قسم تحالف سره خاص دې.اوهرکله چې د وکیل قسم تحالف سره خاص دې.نو دده قسم به د مؤکل د قسم په مقابله کې اهم او اعظم وی.نو هرکله وکیل چې مدعی دې.په ده باندې قسم واجب دې.نو مؤکل چې منکر دې.په ده به په درجه اولی واجب وی.

حاصل داچه امام محمد رحمه الله په معظم یمین یعنی د وکیل قسم ذکر کاوه باندې اکتفاء کړې ده.او دې خبرې اړخ ته نې اشاره کړې ده.چه هرکله په وکیل ( چې مدعی دې) په ده باندې قسم واجب دې.نو مؤکل ( چې منکر دې) په هغه به په درجه اولی قسم واجب وی.یعنی امام محمد رحمه الله اګرچه صرف د وکیل قسم ذکرکړې دې.خو مراد د مؤکل قسم هم دې.اوهرکله چې د دواړو قسم مراد دې.نود امام محمد رحمه الله د ذکر کړې شوی تصریح اود شیخ ابومنصور ماتریدی رحمه الله په قول کې به هیڅ تعارض نه واقع کیږی.

خو په دې ځواب هم اشکال دې.هغه داچه د امام محمد رحمه الله قول «فالقول قول المامور مع يمينه» په دې خبره باندې دلالت کوی.چه وکیل کوم څه وئیلی دی.چه ما په زر روپۍ باندې اخستې دې.په هغې کې به د وکیل تصدیق کولې شی.حالانکه په تحالف کې د هیڅ چا د قول تصدیق نه کیږی.بلکه عقد فسخ کولې شی.نو که د امام محمد رحمه الله مراد تحالف وی.نو امام محمد رحمه الله به «فالقول قول المامور مع يمينه» نه فرمائیلې.حاصل داچه د شیخ ابومنصور ماتوریدی رحمه الله د تحالف قول د امام محمد رحمه الله د تصریح خلاف دې؟

وَالْبَائِعُ بَعْدَ اسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ أَجْنَبِيٌّ عَنْهُمَا او بائع د ثمن حاصلولو نه روسته دواړو نه اجنبی دې.وَقَبْلَهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْمُوَكِّلِ او د ثمن حاصلولو نه وړاندې د مؤکل نه اجنبی دې.إِذْ لَمْ يَجْرِ بَيْنَهُمَا بَيْعٌ ځکه چې د مؤکل او ددې بائع په منځ کې هیڅ بیع نه ده واقع شوې.فَلَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ نو په مؤکل به د بائع د قول تصدیق نه کیږی.فَيَبْقَى الْخِلَافُ نواختلاف پاتې پاتې شو.وَهَذَا قَوْلُ الْإِمَامِ أَبِي مَنْصُورٍ رَحِمَهُ اللَّهُ وَهُوَ أَظْهَرُ. اودا د امام ابومنصور ماتریدی رحمه الله قول دې .اوهم دا ښکاره دې.والله اعلم بالصواب

**حل اللغة:** ① استیفاء الثمن: قبض کول د روپو ② اجنبی: د عاقدینو نه سوا دریم (دریم کس)

**تشریح:** دې عبارت سره علامه مرغینانی رحمه الله د شیخ ابومنصور ماتریدی رحمه الله د اړخه د قول اول دلیل «لأنه

﴿ارتفع الخلاف بتصديق البائع﴾ جواب ورکړې دې.حاصل د خواب دادې.چه د غلام بائع د ثمن وصولو نه روسته د مؤکل او وکیل دواړو نه اجنبی شو.اود ثمن وصولولو نه وړاندې د مؤکل نه اجنبی وو.خکه چې د بائع او مؤکل په منځ کې هیڅ عقد نه دې منعقد شوې.غرض داچه په دواړه صورتونوکې بائع د مؤکل نه اجنبی دې.او هرکله چې بائع د مؤکل نه اجنبی دې.نود بائع کلام به د مؤکل په خلاف معتبر نه وی.اود هغه تصدیق به نشی کولې.او هرکله چې د بائع کلام معتبر نشو.اود هغه تصدیق اونکړې شو.نو د ثمن په مقدار کې د مؤکل او وکیل په منځ کې اختلاف پاته پاتې شو.او هرکله چې د ثمن په مقدار کې اختلاف پاته پاتې شو.نو ددوی دواړو په منځ کې به تحالف واجب وی.او ددوی دواړو په منځ کې واقع شوې عقد حکمی به فسخ کولې شی.

## فصل في التوكيل بشراء نفس العبد

ژباړه: (دا) فصل د نفس عبد اخستلو لپاره د وکیل کاوه (په بیان کې) دې.

**تشریح:** د توکیل بشراء نفس العبد دوې (دوه) صورتونه دی.① رومبې صورت دادې. چې توکیل مصدر دې.او مفعول اړخ ته مضاف وی.او تقدیری عبارت دا وی. ﴿فصل فی توکیل العبد رجل﴾ یعنی یو سړې غلام وکیل کړی.چه دغه غلام خپل ذات د خپل مولا نه ددې سړی لپاره واخلی.په دې فصل کې دویمه مسئله هم دا ده.په رومبی مسئله کې غلام مؤکل دې.او په دویمه مسئله کې غلام وکیل دې. ② دوهم صورت دادې.چه توکیل مصدر فاعل اړخ ته مضاف وی.او تقدیری عبارت داوی. ﴿توکیل العبد رجلاً لیشتر من مولاه﴾ یعنی غلام یو سړې وکیل کړی.چه دغه سړې دا غلام دده د مولا نه واخلی.په دې فصل کې رومبۍ مسئله هم دا ده.اود مصنف رحمه الله عبارت ﴿فی التوکیل بشراء نفس العبد﴾ دواړو ته ګډ دې.

### دغلام د خپل ځان اخستلو لپاره بل سړي وکيل جوړول

قَالَ امام محمد رحمه الله فرمائی. ﴿وَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ لِرَجُلٍ﴾ چې غلام یوسړی ته اوونیل. ﴿اشْتَرِ لِي نَفْسِي مِنَ الْمَوْلَى بِأَلْفٍ﴾ چې ته ما زما لپاره د مولا نه د زر روپو په عوض واخله. ﴿وَدَفَعَهَا إِلَيْهِ﴾ او غلام دې سړی ته زر روپۍ ورکړلې. ﴿فَإِنْ قَالَ الرَّجُلُ لِلْمَوْلَى﴾ نو که دې سړی (وکیل) دده مولا ته اوونیل. ﴿اشْتَرَيْتُهُ لِنَفْسِهِ﴾ چې ما دا غلام دهغه د ذات لپاره اخستې دې. ﴿فَبَاعَهُ عَلَى هَذَا﴾ نو مولا دا غلام په دې شرط باندې خرڅ کړو. ﴿فَهُوَ حُرٌّ﴾ نودا غلام آزاد دې. ﴿وَالْوَلَاءُ لِلْمَوْلَى﴾ او دده ولاء به دده د مالك لپاره وی.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې چه یو غلام یوسړی ته اوونیل.چه ته ما زما لپاره زما د مولا نه د زر روپو په عوض واخله.او غلام دې وکیل ته زر روپۍ ورکړلې.نوکه وکیل ددې غلام مولا ته دا اوونیل.چه ما دا غلام هم د هغه لپاره اخستې دې.او مولا دا غلام هم په دې طریقه خرڅ کړو.نودا غلام به آزاد وی.او ددې غلام ولاء به مولا لپاره وی.

﴿لِأَنَّ بَيْعَ نَفْسِ الْعَبْدِ مِنْهُ إِعْتَاقٌ﴾ خکه چې د غلام ذات د غلام په لاس خرڅول اعتاق دې. ﴿وَشِرَاءُ الْعَبْدِ نَفْسَهُ قَبُولُ الْإِعْتَاقِ بِبَدَلٍ﴾ اود غلام خپل ذات اخستل دا اعتاق بالعوض قبلول دی. ﴿وَالْمَأْمُورُ سَفِيرٌ عَنْهُ﴾ او وکیل د غلام اړخه صرف سفیر دې. ﴿إِذْ لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ الْحُقُوقُ﴾ خکه چې وکیل باندې حقوق نه راجع کیږی. ﴿فَصَارَ كَأَنَّهُ اشْتَرَى بِنَفْسِهِ﴾ نو داسې شوه.لکه چې غلام خپل ذات پخپله اخستې دې. ﴿وَإِذَا كَانَ إِعْتَاقًا﴾ او هرکله چې دا بیع اعتاق شوه. ﴿أَعْقَبَ الْوَلَاءَ﴾ نو ددې نه روسته به ولاء ثابتیږی.

**حل اللغة:** ① اعقب روستو وی

**تشریح:** دلیل دادې.چه د مولا د غلام ذات د غلام په لاس خرڅول، د مولا د اړخه اعتاق علی مال دې.یعنی



هرکله چې مولا خپل غلام ته اوونیل.چه ما ستا په لاس ستا ذات د زر روپو په عوض خرڅ کړو.نو دده مطالبه ده.چه ته ما د زر روپو په عوض آزاد کړې یې.بهرحال د مولا د اړخه دا بیع اعتاق علی مال دې.او اعتاق علی مال د غلام په قبلولو باندې موقوف وی.خو کله چې غلام خپل ذات د زر روپو په عوض واخستلو.نودا اخستل به د غلام د اړخه د زر روپو په عوض اعتاق قبلول وی.او پاتې شو وکیل،نو هغه د غلام د اړخه محض سفیر دې.په دې وجه دې عقد کې وکیل اړخ ته حقوق عقد نه راجع کیږی.

او وجه داده.چه وکیل عقد خپل مؤکل یعنی غلام اړخ ته منسوب کړې دې.نوهرکله چې وکیل عقد خپل مؤکل یعنی غلام اړخ ته منسوب کړې دې.نوده خپل ځان محض سفیر او قاصد ګرځولې دې.او هرکله چې داسې ده.نو ګویا غلام خپل ذات پخپله دڅه واسطې نه بغیر اخستې دې.بهرحال هرکله چې د مولا د غلام ذات د غلام په لاس خرڅول اعتاق دې.نو ددې نه روسته ولاء د معتق (آزادونکی) یعنی مولا لپاره ثابت وی.نو ثابته شوه.چه په دې صورت کې غلام آزاد دې.او دده ولاء به دده د مولا لپاره ثابت وی.

### د غلام مولى ته د غلام د ذات لپاره د اخستلو ذكر نه كولو حكم

﴿وَإِنْ لَمْ يُعَيِّنْ لِلْمَوْلَى﴾ او که وکیل مولا ته دا بیان نکړل (چې ما دا غلام هم دهغه د ذات لپاره اخستې دې). ﴿فَهُوَ عَبْدٌ لِلْمُشْتَرِي﴾ نودا غلام به د مشتری لپاره وی. ﴿لِأَنَّ اللَّفْظَ حَقِيقَةٌ لِلْمُعَاوَضَةِ﴾ خکه چې لفظ معاوضه لپاره به په معاوضه باندې ددې مخالفت کولې شی. ﴿وَأَمْكَنَ الْعَمَلُ بِهَا إِذَا لَمْ يُعَيِّنْ فَيُحَافَظُ عَلَيْهَا﴾

**تشریح:** د تیرې شوې مسئلې دوهم صورت دادې.که وکیل غلام دهغه د مولا نه واخستلو.خو مولا ته نې دا اونه ونیل.چه ما دا غلام د هغه د ذات لپاره اخستې دې.بلکه صرف وې ونیل.چه ما ستا دا غلام د زر روپو په عوض اخستې دې.نو په دې صورت کې به دا غلام د مشتری (وکیل) ملك وی.او هغه زر روپۍ کومې چې غلام (مؤکل) خپل وکیل ته ورکړې دی.مولا لپاره وی.ددې مثل نورې زر روپۍ یعنی د غلام ثمن به په مشتری (وکیل) باندې واجب وی.

**دلیل کون الغلام للمشتری** ۞ د رومبی جزء (یعنی دا غلام به د مشتری ملك وی) دلیل دادې.چه د وکیل (مشتری) قول ﴿إشتریت عبدك بألف﴾، ماستا غلام د زر روپو په عوض واخستلو، د معاوضه په معنی کې حقیقت دې.یعنی ﴿إشتریت عبدك بألف﴾ د عقد معاوضه لپاره وضع کړې شوې دې.دغلام آزادولو لپاره نه دې وضع شوې.او دا قاعده ده.چه ترکومه پورې په حقیقت باندې عمل کول ممکن وی.په حقیقت باندې عمل کول واجب وی.مجاز اړخ ته رجوع کول جائز نه وی.او دلته کې چونکه وکیل دا اونه ونیل.چه ما ستا دا غلام پخپله هم ددې غلام لپاره اخستې دې.خکه د وکیل د کلام ﴿إشتریت عبدك بألف﴾ په حقیقت باندې عمل کول ممکن دی.اوهرکله چې ددې کلام په حقیقت باندې عمل کول ممکن دی.نو ددې د حقیقت یعنی د معاوضه معنی به پوره پوره ساتنه کولې شی.او هرکله چې د وکیل ذکر شوې اخستل معاوضه ده.او په معاوضه باندې عمل هم اوکړې شو.نو ددې وکیل لپاره به په غلام باندې ملك ثابت شی.او وکیل به ددې غلام مالك وی.خکه چې دا عقد معاوضه د وکیل اود غلام د بائع په منځ کې منعقد شوې ده.او په دې عقد معاوضه کې وکیل چونکه مشتری دې.او مشتری د مبیع مالك وی.خکه به وکیل د مبیع یعنی دغلام مالك وی.

**الاعتراض** ۞ علامه مرغینانی رحمه الله په قول ﴿وأمکن العمل بها﴾ باندې یو اعتراض دې.هغه داچه تاسو وویل.که وکیل ﴿إشتریت عبدك بألف﴾ اوونیل.اودا نې اونه ونیل.چه ما هم ددې غلام لپاره دا اخستې دې.نو په دې صورت کې حقیقت باندې عمل کول ممکن دی.موږ دا خبره نه منو.خکه چې غلام د خپل مولا نه د خپل ذات اخستلو وکیل کړې دې.اود خپل ذات اخستلو وکیل کول، د عبد معین اخستلو وکیل کول دی.او هرکله چې مؤکل د عبد معین یا د یو معین شئ اخستلو وکیل کوی.نو وکیل ته ددې معین شئ ځان لپاره د

اخستلو اجازت نه وي.نو دلته کي به هم وکیل ته ددې معین غلام خپل خان لپاره د اخستلو اجازت نه وي.او هرکله چې وکیل ته ددې معین غلام خپل خان لپاره د اخستلو اجازت نشته.نو ددې غلام اخستل به موکل یعنی پخپله دغلام لپاره وي.او هرکله چې ددې غلام اخستل پخپله ددې غلام لپاره دی.نودا عقد معاوضه نشی کیدې.لکه څنګه چې وړاندې تیرشوی دی.نو ثابته شوه.چه دلته په حقیقت یعنی د معاوضه په معنی باندې عمل کول ممکن نه دی.

**الجواب:** موکل یعنی غلام وکیل د کوم تصرف وکیل کړې وو.وکیل د هغې مطابق تصرف نه دې کړې. بلکه بل تصرف ئې کړې دې.ځکه چې غلام وکیل ته دا وئیلي وو.چه ته ما زما د مولا نه زما د ذات لپاره د زر روپو په عوض واخله.اودا اعتاق د مال جنس دې.لکه څنګه چې وړاندې تیرشوی دی.خو کله چې وکیل مولا ته صرف دا اووئیل.چه ما ستا غلام د زر روپو په عوض واخستلو.اودا ئې اونه اووئیل.چه هم ددې غلام لپاره مې اخستې دې.نودا صرف شراء او اخستل شو.یعنی وکیل جوړ کړې شوې وو.د اعتاق علی مال، او عمل ئې کړې دې.صرف د شراء، نو دا عمل د موکل (غلام) دحکم خلاف شو.او وکیل چې کله د موکل د حکم خلاف عمل اوکړی.نو دغه عمل په وکیل باندې نافذ کولې شی.په موکل نشی نافذ کولې.نو هرکله چې د غلام دا اخستلو دا عمل په وکیل باندې نافذکړې شو.نو وکیل به ددې غلام مالك وي.

> **بِخِلَافِ شِرَاءِ الْعَبْدِ نَفْسَهُ** ددې په خلاف د غلام خپل ذات اخستل دی. **لِأَنَّ الْمَجَازَ فِيهِ مُتَعَيِّنٌ** ځکه چې په دې کي مجاز متعین دې.

**تشریح:** ددې په خلاف که غلام د خپل مولا نه خپل ذات پخپله واخستلو.نو په دې صورت کي چونکه په حقیقت باندې عمل کول متعذر دی.ځکه به دا په مجاز یعنی د اعتاق په معنی باندې محمول کولې شی.او په حقیقت باندې عمل کول ځکه متعذر دی.چه غلام ددې خبرې اهل نه دې.چه هغه دځه مال مالك وي.نود غلام خپل ذات اخستل به د مالك نه کیدلو سبب نه وي.بلکه مجازاً به اعتاق وي.یاپه دې وجه چې غلام پخپله د خپل ذات په حق کي مال نه وي.او هرکله چې غلام د خپل خان په حق کي مال نشو.نو هغه د خپل ذات مالك کیداې هم نشی.او وجه ددې دا ده.چه غلام د خپل ذات په حق کي داسې سړې دې.چه په ده باندې حد او قصاص واجبیږي.او مال د سړي غیر دې.کوم چې د سړي د مصلحتونو (او فائدو) لپاره پیدا کړې شوې دې.نو هرکله چې غلام د خپل خان په حق کي مال نه دې.نو دده خپل ذات اخستل معاوضه نشی کیدې.او هرکله چې معاوضه نشی کیدې.نود معاوضه په معنی باندې عمل کول به هم ممکن نه وي.اوهرکله چې په معاوضه یعنی حقیقت باندې عمل کول ممکن کیداې نشی.نودا شراء به مجازاً اعتاق علی مال ګرځولې شی.

> **وَإِذَا كَانَ مُعَاوَضَةً** او هرکله چې دا اخستل معاوضه ده. **يَثْبُتُ الْمِلْكُ لَهُ** نو ملك به مشتری لپاره ثابت وي. **(وَالْأَلْفُ لِلْمَوْلَى)** او زر روپۍ به د مولی لپاره وي **لِأَنَّهُ كَسْبُ عَبْدِهِ** ځکه چې دا خو دهغه د غلام ګټه ده

**تشریح:** اود دوهم جزء (کوم زر روپۍ چې غلام وکیل ته ورکړې دی.هغه به د مولا لپاره وي) دلیل دادې.چه دا زر روپۍ د مولا د غلام ګټه (او مزدوری) ده.او د غلام ټوله مزدوری مولا لپاره وي.نودا زر روپۍ به هم مولا لپاره وي.

> **(وَعَلَى الْمُشْتَرِي أَلْفٌ مِثْلُهُ) ثَمَنًا لِلْعَبْدِ** او په مشتری به زر روپۍ نورې ددې پشان لازم وي.دغلام قیمت **فَإِنَّهُ فِي ذِمَّتِهِ** ځکه چې دا چې د مشتری په ذمه باندې دی **حَيْثُ لَمْ يَصِحَّ الْأَدَاءُ** ځکه چې اداکول صحیح نشو.

**تشریح:** اوددریم جزء (چې مشتری باندې به نورې زر روپۍ واجب وي) دلیل دادې.چه د مشتری په ذمه کي ثمن واجب دې.او مشتری چې کومې زر روپۍ مولا ته ورکړې دی.هغه چونکه دده د غلام ګټه (او مزدوری) ده.او د غلام ګټه د مولا ملك وي.ځکه به دا زر روپۍ د غلام ثمن نه واقع کیږي.اود ثمن په طور به ددې



اداکول صحیح نه وي.نو هرکله چې په مشتری (وکیل) باندې ثمن واجب دې.او کومې زر روپۍ چې مشتری مولا ته ورکړې دی.د هغې اداکول د ثمن په طور صحیح نه دی.نو مشتری باندې ددې مثل نورې زر روپۍ د غلام ثمن واجب وي.

**الاعتراض:** صاحب د فتح القدیر، عنایه، کفایه فرمائی.چه نورې زر روپۍ مشتری باندې واجبیدل په دې صورت کي خو ښکاره دی.کله چې اخستل مشتری لپاره وي.خو کله چې اخستل پخپله غلام لپاره وي.تردې چې غلام آزاد شی.نو آیا په دې صورت کي به هم غلام باندې نورې زر روپۍ واجب وي.په جامع صغیر کي قاضی خان فرمائی.چه دا خبره اګرچه په کتاب کي ذکرنه ده.خو مناسب دادی.چه غلام باندې نورې زر روپۍ مولا لپاره واجب وي.ځکه چې کومې زر روپۍ غلام خپل وکیل ته، او وکیل د غلام مولا ته ورکړې وې.نود غلام د ګټې کیدلو په وجه هغه د مخکي نه د مولا ملك دې.نو دغه زر روپۍ به د اعتاق بدل او عوض نه وي.او هرکله چې دا زر روپۍ د اعتاق بدل او عوض نشی کیدلې.نو په غلام به نورې زر روپۍ کومې چې د اعتاق بدل او عوض وي.ضرور به واجب وي.

**الجواب:** صاحب د عنایه رحمه الله په ځواب کي فرمائی.چه د صاحب دهدایه رحمه الله عبارت کي د غلام په ذمه نورې زر روپۍ واجبیدلو باندې اشاره موجود ده.په دې طریقه چې مصنف د هدایه رحمه الله فرمائی.چه «شراء العبد نفسه» د غلام اخستل پخپله د غلام لپاره اعتاق په بدل قبلول دی.نو که په غلام باندې نورې زر روپۍ واجب نکړې شوې.نودا به اعتاق په بدل سره نه وي.بلکه اعتاق بلا بدل به وي.حالانکه «شراء العبد نفسه» اعتاق په بدل سره ګرځولې شوې دې.اعتاق بلابدل نه‌دې ګرځولې شوې.نو د مصنف د هدایه رحمه الله «شراء العبد نفسه» اعتاق ببدل ګرځول ددې خبرې دلیل دې.چه په غلام باندې نورې زر روپۍ واجب دی.

> **بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِشِرَاءِ الْعَبْدِ مِنْ غَيْرِهِ حَيْثُ لَا يُشْتَرَطُ بَيَانُهُ** په خلاف د غلام نه د علاوه د اړخه د غلام اخستلو د وکیل.چه (په وکیل باندې) ددې بیانول شرط نه دی. **لِأَنَّ الْعَقْدَيْنِ هُنَاكَ عَلَى نَمَطٍ وَاحِدٍ** ځکه چې دلته کي دواړه عقد په یو ډول باندې دی. **وَفِي الْحَالَيْنِ الْمُطَالَبَةُ تَتَوَجَّهُ نَحْوَ الْعَاقِدِ** او په دواړه حالتونوکي به مطالبه عاقد اړخ ته متوجه وي.

**تشریح:** ددې په خلاف که د غلام نه علاوه یو سړی بل سړې د غلام اخستلو وکیل کړو.مثلاً واصف شاهد وکیل کړو.چه د عارف نه د هغه غلام زما لپاره د زر روپو په عوض واخله.نو په وکیل باندې اخستلو په وخت دا بیانول شرط نه دی.چه ما دا غلام خپل موکل لپاره اخستې دې.ځکه که وکیل دا اووائی.او که اونه اووائی.د واړو صورتونوکي عقد شراء موکل لپاره واقع کیږي.اودا دواړه عقدونه یعنی کوم چې وکیل خپل خان اړخ ته منسوب کړې دې.او کوم ئې چې موکل اړخ ته منسوب کړې دې.د بائع په حق کي په یو اندازه سره دی.یعنی په دواړه صورتونوکي په دا عقد بائع لپاره بیع وي.اود بائع د اړخه به د غلام اعتاق نه وي.او په دې صورتونوکي به مطالبه عاقد یعنی وکیل اړخ ته متوجه وي.نو هرکله چې په دواړه صورتونوکي عقد په یو انداز دې.او په دواړه صورتونوکي مطالبه او حقوق د عقد وکیل باندې عائد کیږي.نود اخستلو په وخت دا بیانول (چې ما دا غلام خپل موکل لپاره اخستې دې) قطعاً ضروری نه دې.

> **أَمَّا هَاهُنَا فَأَحَدُهُمَا إِعْتَاقٌ مُعْقِبٌ لِلْوَلَاءِ** بهرحال دلته په دې دواړو عقدونوکي یو خو اعتاق دې.چه ددې نه روسته به ولاء ثابتیږي. **وَلَا مُطَالَبَةَ عَلَى الْوَكِيلِ** او په وکیل به هیڅ مطالبه نه وي. **وَالْمَوْلَى عَسَاهُ لَا يَرْضَاهُ** او کیداې شی چې په دې باندې مولا راضی نه وي. **وَيَرْغَبُ فِي الْمُعَاوَضَةِ الْمَحْضَةِ فَلَا بُدَّ مِنَ الْبَيَانِ.** او صرف معاوضه اړخ ته راغب (او شوق مند) وي.نو ددې بیانول ضروری دی.

**تشریح:** اوپاتې شوه د متن مسئله یعنی هرکله چې غلام خپل ذات د خپل خان لپاره د اخستلو وکیل کړو.نو

په دې صورت كي وكيل باندې دا بيانول ضروري دي.چه ما دا غلام پخپله دهغه ذات لپاره اخستې دې.ځكه چې په دې مسئله كي د بائع يعني د مولا په حق كي دواړه عقدونه مختلف دي.په دې وجه په دې مسئله كي كه وكيل شراء (اخستل) خپل موكل (غلام) اړخ ته منسوب كړل.نودا به د مولا (بائع) په حق كي اعتاق على مال وي.او مولا (بائع) لپاره به ولاء ثابتيږي.او په وكيل به د ثمن (مال) وغيره مطالبه نه وي.ځكه وړاندې تيرشوي دي.چه په دې صورت كي وكيل سفيرمحض وي.حقوق د عقد هغه اړخ ته نه راجع كيږي.اوكه وكيل عقد شراء خپل موكل اړخ ته منسوب نكړله.نودا عقد به د بائع (مولا) په حق كي مبيع وي.يعني مولا به د غلام خرڅونكې وي.او وكيل به دخپل ځان لپاره اخستونكې وي.او په وكيل به د ثمن وغيره مطالبه واجب وي.او كله مولا اعتاق على مال نه خوښوي.بلكه هغه معاوضه محضه خوښوي.په كوم كي چې د ثمن مطالبه د وكيل نه كيږي.

او د اعتاق على مال نه خوښولو وجه دا ده.چه د اعتاق په وجه اگرچه د مولا لپاره ولاء ثابتيږي.خو مولا عتاقه چونكه د خپل آزاد شوي غلام عاقله هم دي.په دې وجه كه دې آزاد شوي غلام څه جنايت اوكړو.نو ددې تاوان وغيره به هم مولا باندې واجب وي.نو هركله چې مولا ډير خله اعتاق على مال نه خوښوي.او معاوضه خوښوي.نو په وكيل واجب دي.چه هغه په دې صورت كي دا وضاحت اوكړي.چه ما دا غلام پخپله ددې غلام لپاره اخستې دې.چه مولا په سوچ سمجه (او غور) سره ځواب اوكړي.كه وكيل دا وضاحت اونكړو.نودا اخستل به موكل يعني غلام لپاره نه وي.بلكه پخپله وكيل لپاره به وي.

## د آزاد سړي ،غلام وكيل كول چې خپل ځان د خپل مولى نه زما لپاره واخله

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدٍ اوكه يو آزاد سړي يو غلام ته اووئيل. اشْتَرِ لِي نَفْسَكَ مِنْ مَوْلَاكَ لِلْآمِرِ چې ته د خپل مولا نه خپل ذات زما لپاره واخله. فَقَالَ لِمَوْلَاهُ نو غلام خپل مولا ته اووئيل. بِعْنِي نَفْسِي لِفُلَانٍ بِكَذَا چې زما ذات د فلاني لپاره زما په لاس د دومره ثمن په عوض راخرڅ كړه. فَفَعَلَ نو مولا اوكړل. فَهُوَ لِلْآمِرِ نودا غلام به د موكل لپاره وي.

**تشريح:** مذكوره فصل چې په كومو دوې (دوه) مسئلو باندې مشتمل دې.په هغې كي دويمه مسئله په دې عبارت كي ذكر ده.د هغې صورت دادې.چه يو آزاد سړي غلام ته اووئيل.چه ته خپل ذات د خپل مولا نه زما لپاره د دومره ثمن په عوض واخله.اوس به وكيل (غلام) عقد شراء خپل موكل اړخ ته منسوب كوي.يا به خپل ذات اړخ ته منسوب كوي.يا به دا (عقد شراء) مطلق ساتي.يعني دا به نه موكل اړخ ته منسوب كوي.او نه به خپل ځان اړخ ته منسوب كوي.نو كه وكيل (غلام) عقد شراء خپل موكل اړخ ته منسوب كړه.يعني وكيل (غلام) خپل مولا ته اووئيل.چه ته زما ذات زما په لاس د فلاني موكل لپاره د دومره ثمن په عوض راخرڅ كړه.نو مولا ورخرڅ كړو.او غلام (وكيل) دا عقد قبول كړو.نودا غلام به موكل لپاره وي.

لِأَنَّ الْعَبْدَ يَصْلُحُ وَكِيلًا عَنْ غَيْرِهِ فِي شِرَاءِ نَفْسِهِ ځكه چې غلام د خپل ځان نه د علاوه اړخه د خپل ذات اخستلو وكيل كيداې شي. لِأَنَّهُ أَجْنَبِيٌّ عَنْ مَالِيَّتِهِ ځكه چې غلام د خپل ماليت نه اجنبى دې. وَالْبَيْعُ يَرِدُ عَلَيْهِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ مَالٌ او بيع په غلام باندې د مال كيدلو په حيثيت سره وارد كيږي.

**تشريح:** دليل دادې.چه غلام د خپل ذات اخستلو په سلسله كي د بل سړي د اړخه وكيل شوې دې.ځكه چې د غلام دوې (دوه) حيثيتونه دي.يو دا چې هغه سړې دې. دوهم دا چې هغه مال دې.اود هغه ماليت د هغه د مولا لپاره وي.خود سړي كيدلو په حيثيت سره د مولا هيڅ حق نه وي.نو په دې دواړه حيثيتونوكي تغاير دې.كه غلام د خپل ماليت د خپل مولا نه علاوه د بل چا لپاره اقرار اوكړو.او وې وئيل.چه زه د فلاني غلام يم.نودا اقرار به صحيح نه وي.ځكه هيڅ سړي ته دا حق نشته.چه هغه د بل د مال چا لپاره اقرار اوكړي.او بيع غلام باندې د هغه د مال كيدلو په حيثيت سره واردېږي.د هغه د سړي كيدلو په حيثيت سره نه



واردېږي.يعني د غلام اخستل خرڅول ځكه كيږي.چه هغه مال دې.او په دې وجه نه كيږي.چه هغه سړې دې.نو هركله چې د غلام سړې كيدل او ماليت جلا جلا دوې (دوه) شيان دي.نود غلام پخپله د خپل ذات اخستلو وكيل كول داسې دي.لكه د مولا د مالونو ځنې د بل څه مال اخستلو وكيل كول.يا د غلام نه علاوه بل څوك سړې د غلام اخستلو وكيل كول.او غلام ته د هغه د ذات نه علاوه د مولا د بل څه مال اخستلو وكيل.اود غلام نه علاوه بل څوك سړې د غلام اخستلو وكيل كول، د واړه جائز دي.نو غلام پخپله د خپل ذات اخستلو وكيل كول به جائز وي.بهرحال دا خبره ثابته شوه.چه غلام د بل سړي د اړخه د خپل ذات اخستلو وكيل كيدلې شي.

إِلَّا أَنَّ مَالِيَّتَهُ فِي يَدِهِ خودا چې ماليت د غلام په قبضه كي وي. حَتَّى لَا يَمْلِكَ الْبَائِعُ الْحَبْسَ بَعْدَ الْبَيْعِ لِاسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ تردې چې بائع د خرڅولو نه روسته د ثمن وصولولو نه روسته دده د منع كولو او ځان سره د ساتلو مالك نه دې.

**تشريح:** دې عبارت سره علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.كه د غلام په سړي كيدلو او ماليت كي تغاير دې.اودا دواړه جلا جلا دوې (دوه) شيان دي.خو چونكه غلام ماذون له فى التجارت دې.په دې وجه دهغه ماليت پخپله د هغه په قبضه كي دې.اود غلام ماليت پخپله د هغه په قبضه كي د كيدلو اثر به دا وي.چه د مولا او د غلام په منځ كي د عقد بيع واقع كيدلو نه روسته كه مولا (بائع) د ثمن وصولولو لپاره غلام منع كول اوغواړي.نو هغه ته به دا اختيار بالكل نه وي.ځكه كله چې بائع مبيع حواله كوي.نو بيا هغه ته د ثمن وصولولو په وجه د مبيع منع كاوه اختيار نه وي.لكه مودع (چاسره چې امانت ايخودلې شي) كه د مالك نه وديعت (مال د امانت) واخستلو.او وديعت مودع سره موجود دې.نو بائع (مالك) ته د ثمن وصولولو لپاره د وديعت سامان منع كاوه حق نه وي.ځكه چې وديعت سامان مودع ته سپارلې شوې دې.دغه ډول په زيربحث مسئله كي د غلام ماليت چونكه پخپله د غلام (مشترى) په قبضه كي موجود دې.په دې وجه به مولا (بائع) ته د ثمن وصولولو لپاره د غلام منع كاوه هيڅ حق حاصل نه وي.

فَإِذَا أَضَافَهُ إِلَى الْآمِرِ نو هركله چې غلام عقد آمر (موكل) اړخ ته منسوب كړو. صَلَحَ فِعْلُهُ امْتِثَالًا نو دده فعل د حكم د تعميل (او پوره كولو) صلاحيت لري. فَيَقَعُ الْعَقْدُ لِلْآمِرِ نودا عقد به دموكل لپاره وي.

**تشريح:** دې عبارت سره د دليل نتيجه ذكركړې شوې ده.يعني وړاندې دا خبره ثابته شوه.چه غلام د خپل ځان نه د علاوه د اړخه د خپل ذات اخستلو وكيل كيدلې شي.نو هركله چې غلام (وكيل) عقد خپل موكل اړخ ته منسوب كړو.او خپل مولا (بائع) ته ئې دا اووئيل.چه ته زما ذات زما په لاس زما فلاني موكل لپاره د دومره ثمن په عوض راخرڅ كړه.او مخكې تيرشوي دي.چه د غلام دا فعل يعني خپل ذات اخستل د هغه د موكل د حكم تعميل هم كيدلې شي.او په كوم صورت كي چې وكيل عقد خپل موكل اړخ ته منسوب كړي.اود وكيل فعل د موكل د حكم تعميل هم وي.نو په دې صورت كي عقد موكل لپاره واقع كيږي.وكيل لپاره نه واقع كيږي.نو دلته كي به هم عقد شراء موكل لپاره واقع كيږي.وكيل (غلام) لپاره به نه واقع كيږي.

## دغلام خپل ځان لپاره عقد كول

وَإِنْ عَقَدَ لِنَفْسِهِ اوكه غلام دخپل ځان لپاره عقد اوكړو. فَهُوَ حُرٌّ نو هغه آزاد دې. لِأَنَّهُ إِعْتَاقٌ وَقَدْ رَضِيَ بِهِ الْمَوْلَى دُونَ الْمُعَاوَضَةِ ځكه چې دا اعتاق دې.او مولا په دې باندې راضى شوې دې.په عقد معاوضه باندې نه دې راضى شوې.

**تشريح:** په دې عبارت كي ذكرشوي درې صورتونوكي دوهم صورت ذكر دې.د هغې حاصل دادې.كه يوكس غلام ددې خبرې وكيل كړو.چه ته خپل ذات د خپل مولا نه زما لپاره واخله.نو غلام عقد شراء خپل موكل

ارخ ته منسوب نکړله.بلکه خپل ذات ارخ ته ئې منسوب کړله.او خپل مولا ته ئې دا اوونيل.چه ته ما زما په لاس د دومره قدرې مال په عوض راخرڅ کړه.نو مولا اوونيل.چه ما خرڅ کړو.نودا غلام به آزاد وی.ځکه چې غلام د هيڅ شئ مالك نه وی.او هرکله چې غلام د څه شئ مالك نه وی.نود هغې په عوض د خپل ځان اخستلو سوال هم نه پيدا کيږی.او هرکله چې داسې ده.نودا عقد به غلام لپاره اخستل نه وی.بلکه د مولا د غلام ذات پخپله د هغه په لاس خرڅول به د مولا د اړخه اعتاق (آزادول) وی.اود غلام خپل ذات اخستل به اعتاق قبلول وی.بهرحال دا عقد اعتاق دې.او مولا په اعتاق باندې راضی° هم دې.ځکه مولا ته دا خبره معلومه ده.چه زما لپاره د غلام ذات د هغه په لاس خرڅول د هغه اعتاق دې.او مولا په عقد معاوضه باندې راضی نه دې.او هرکله چې مولا په عقد معاوضه باندې راضی نه دې.نودا عقد به موکل لپاره هم نه واقع کيږی.بهرحال هرکله چې دا عقد اعتاق دې.او عقد معاوضه نه دې.نو غلام به آزاديږی.

| |
|---|
| **وَالْعَبْدُ وَإِنْ كَانَ وَكِيلًا بِشِرَاءِ شَيْءٍ مُعَيَّنٍ وَلَكِنَّهُ أَتَى بِجِنْسِ تَصَرُّفٍ آخَرَ** او غلام اګرچه د معين غلام اخستلو وکيل دې.خو هغه د جنس آخر تصرف راوړلو.**وَفِي مِثْلِهِ يَنْفُذُ عَلَى الْوَكِيلِ** او په داسې صورت کې تصرف وکيل باندې نافذ کيږی |

**تشریح:** دا عبارت د يو اشکال ځواب دې.اشکال دادې.چه په دې مسئله کې غلام د شئ معين يعنی د خپل ذات اخستلو وکيل دې.او کله چې څوک سړې د يو معين شئ اخستلو وکيل وی.نو هغه ته د خپل ځان لپاره د هغې د اخستلو اجازت نه وی.نو دلته کې به هم غلام ته د خپل ذات خپل ځان لپاره د اخستلو اجازت پکار نه وو.بلکه دا اخستل موکل لپاره پکار وه.او په دې صورت کې د غلام آزاد کيدل ښکاره دی ؟

**الجواب:** ددې ځواب دادې.چه په دې مسئله کې وکيل د موکل د حکم مخالفت کړې دې.په دې طريقه چې غلام ددې خبرې وکيل جوړ کړې شوې وو.چه هغه خپل ذات د مال په عوض واخلی.اود موکل مملوك جوړشی.خو غلام داسې اونکړل.بلکه هغه د اعتاق علی مال تصرف اوکړو.يعنی خپل مولا ته ئې دا اوونيل.چه ته ما د مال په عوض آزاد کړه.اودا خبره وړاندې تيره شوې ده.که وکيل د موکل د حکم مخالفت اوکړو.نو اخستل پخپله وکيل باندې نافذ کيږی.نو په دې مسئله کې به اخستل وکيل يعنی غلام باندې نافذ وی.او غلام چونکه د هيڅ شئ مالك نشی کيدلې.ځکه به دا اخستل اعتاق علی مال وی.او غلام به آزاد وی.

### دغلام موکل لپاره د خپل ځان اخستو ذکر نه کولو حکم

| |
|---|
| **وَكَذَا لَوْقَالَ** او هم دغه ډول که غلام اوونيل.**بِعْنِي نَفْسِي** چې ته زما په لاس زما ذات راخرڅ کړه.**وَلَمْ يَقُلْ لِفُلَانٍ** او داسې ئې اونه ونيل.چه د فلانی دپاره.**فَهُوَ حُرٌّ** نوهغه آزاد دې.**لِأَنَّ الْمُطْلَقَ يَحْتَمِلُ الْوَجْهَيْنِ** ځکه چې مطلق کلام د دواړو صورتونو احتمال لری.**فَلَا يَقَعُ امْتِثَالًا بِالشَّكِّ** نود شك په وجه به دا دحکم تعميل نه وی.**فَيَبْقَى التَّصَرُّفُ وَاقِعًا لِنَفْسِهِ** او تصرف به د خپل ذات لپاره پاته پاتې کيږی. |

**تشریح:** په دې عبارت کې ذکرشوی درې صورتونوکې دريم ذکر دې.د هغې حاصل دادې.چه غلام عقد مطلق اوساتلو.يعنی نه ئې خپل ځان ارخ ته منسوب کړو.اونه ئې خپل موکل ارخ ته منسوب کړو.بلکه غلام خپل مولا ته داسې اوونيل.چه ته زما ذات زما په لاس راخرڅ کړه.او په دې باندې ئې هيڅ زيادت اونکړو.نو په دې صورت کې به هم غلام آزاديږی.

اوددې دليل دادې.چه د غلام دا کلام «بعني نفسي» مطلق دې.د دواړو صورتونو احتمال لری.يعنی دا احتمال هم دې.چه غلام خپل ذات د خپل ځان لپاره اخستې وی.اودا احتمال هم شته.چه د خپل موکل لپاره ئې اخستې وی.نو هرکله چې دواړه احتمالات شته.نود غلام دا کلام مشکوك شو.او مشکوك کلام چونکه د حکم تعميل نشی ګرځيدلې.ځکه د شك په وجه د غلام دا کلام به د موکل د حکم تعميل نه واقع



کيږی.يعنی دا به نشی ونيلې.چه غلام د موکل د حکم تعميل کړې دې.او خپل ذات ئې د موکل لپاره اخستې دې.او هرکله چې دغلام دا کلام د موکل د حکم تعميل واقع نشو.نود غلام دا تصرف يعنی خپل ذات اخستل پخپله دغلام لپاره واقع شو.او په دې تصرف سره غلام آزاديږی.لکه څنګه چې وړاندې تير شوی دی.ځکه ښکاره هم داده.چه انسان خپل ځان لپاره تصرف اوکړی.خاص طور باندې داسې تصرف،په کوم چې اعتاق حاصليږی. بهرحال ثابته شوه.چه غلام به په دې دريم صورت کې هم آزاديږی.

## فصل في البيع

ژباړه: (دا) فصل د توکيل بالبيع (په بيان کې) دې.

**تشریح: وجه تقديم توکيل بالشراء على البيع:** چونکه توکيل بالشراء د اثبات معنی ته متضمن ده.په دې طريقه چې د شراء په ذريعه مبيع حاصلولې شی.او توکيل بالبيع د ازاله معنی ته متضمن ده.په دې طريقه چې د توکيل بالبيع په ذريعه مبيع خپل ځان نه زائل کول مقصود وی.اود يو شئ زائله کول هله کيږی چې وړاندې موجود وی نوځکه ئې توکيل بالشراء مقدم کړلو په توکيل بالبيع باندې

### وکيل بالبيع والشراء د کومو خلقو سره عقد کولې شی ؟

| |
|---|
| **قَالَ وَالْوَكِيلُ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ لَا يَجُوزُ لَهُ** د وکيل بالبيع او وکيل بالشراء لپاره جائز نه دی.**أَنْ يَعْقِدَ مَعَ أَبِيهِ وَجَدِّهِ** چې هغه د خپل پلار نيکه سره عقد اوکړی.**وَمَنْ لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ لَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله [1] يا هغه سړی سره عقد اوکړی.چه د هغه ګواهی دده په حق کې قبول نکړې شی. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز |

**صورة الاختلاف:** دادې واضحه وی.چه دامام صاحب او صاحبينو رحمهم الله په منځ کې په متن کې ذکر شوې اختلاف په هغه وخت دې.کله چې وکالت مطلق وی.او موکل اوونيل. «بع من شئت» ،،دچا په لاس چې غواړې خرڅوه ،يعنی موکل عموم مشيت سره وکالت مقيد کړې وی. نو په دې صورت کې ذکرشوی خلګو سره د وکيل اخستل خرڅول بالاتفاق جائز دی.

**مذهب ابي حنيفة ①:** رحمه الله د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا د امام شافعی رحمه الله يو قول دې.او په يو روايت کې امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.که يو سړی بل څوك د خرڅولو يا اخستلو،يا د دواړو وکيل کړو. نو وکيل نه خپل پلار او نه نيکه سره عقد کولای شی .او نه هغه قرابت دارانو (رشته دارانو) سره، دکومو په حق کې چې د ده ګواهی نه قبليږی.لکه دهغه ځوې،نوسې، ښځه، غلام مکاتب.

**دليله:** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی.چه دا خبره منو،چه توکيل مطلق دې.خود تهمت ځايونه د وکالتونو نه مستثنی وی.يعنی وکيل چې د کوم کس سره په معامله کاوه متهم کيږی.د موکل د اړخه هغوی سره د معامله کاوه اجازت نه وی.او په ذکر شوې مسئله کې هم دا مقام د تهمت دې.يعنی پلار نيکه سره معامله کولوکې وکيل متهم دې.① يو په دې وجه چې د پلار، نيکه، او ځوی په منځ کې د يو بل په حق کې ګواهی نه قبليږی.② ځکه چې ددوی په منځ کې منافع خپلوکې متصل دی.ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې پلار د ځوی د مال نه،او زوې د پلار د مال نه نفع اخلی.نود پلار مال من وجه د ځوی مال شو.اود ځوی مال من وجه د پلار مال شو.اوهرکله چې داسې ده.نود وکيل د خپل پلار نيکه په لاس خرڅول من وجه پخپل ځان خرڅول دی.او وړاندې تير شوی دی.چه پخپل لاس خرڅول ناجائز دی.نود وکيل د خپل پلار، نيکه وغيره په لاس خرڅول به هم ناجائز وی.

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في شرح عقود (ص،٣٣) وكنز (ص،٢٧١) وملتقى (٣٢٤\٣) نقلاً عن القول الراجح (١٥٩\٢)_

**وَقَالَا: يَجُوزُ بَيْعُهُ مِنْهُمْ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ** او صاحبين رحمهما الله فرمائي چه ددې خلګو په لاس د وکيل په پوره قيمت باندې خرڅول جائز دی. **إِلَّا مِنْ عَبْدِهِ أَوْ مُكَاتَبِهِ** خود خپل غلام يا مکاتب په لاس خرڅول جائز نه دی.

**مذهب الصاحبين**® صاحبين رحمهما الله په نيز په مذکوره مسئله کې وکيل لپاره مثل قيمت باندې دغه خلګ و سره اخستل خرڅول جائز دی. البته خپل غلام او مکاتب سره په مثل قيمت باندې اخستل خرڅول کول، ناجائز دی.

**مراد صاحب الهداية**® مرغيناني رحمه الله فرمايي چې وکيل ته ذکرشوی رشته دارانو سره په مثل قيمت باندې اخستل خرڅول کول جائز دی. خو په غبن يسير يعنی معمولی شان نقصان سره اخستل خرڅول جائز نه دی. خو صاحب د کفايه رحمه الله د ذخيره په حواله سره ليکلی دی. چه غبن يسير هم مثل قيمت سره ملحق دې. يعنی د صاحبينو رحمهما الله په نيز لکه څنګه چې په مثل قيمت باندې دغه خلګو سره معامله کول جائز ده. دغه ډول د غبن يسير په صورت کې هم دغه خلګو سره معامله کول جائز ده.

**لِأَنَّ التَّوْكِيلَ مُطْلَقٌ** ځکه چې توکيل مطلق دې. **وَلَا تُهْمَةَ** او هيڅ تهمت نشته. **إِذِ الْأَمْلَاكُ مُتَبَايِنَةٌ** ځکه چې املاک جلا دی. **وَالْمَنَافِعُ مُنْقَطِعَةٌ** او منافع منقطع دی. **بِخِلَافِ الْعَبْدِ** په خلاف د غلام، **لِأَنَّهُ بَيْعٌ مِنْ نَفْسِهِ** ځکه چې دا پخپل لاس خرڅول دی. **لِأَنَّ مَا فِي يَدِ الْعَبْدِ لِلْمَوْلَى** ځکه چې کوم څه دغلام په قبضه کې دی. هغه د مولا ملک دې.

**تشريح: دليلهما**® دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه دلته کې توکيل مطلق دې. يعنی مؤکل مطلقاً د خرڅولو يا اخستلو وکيل کړې دې. اوددې پابند نې نه دې جوړکړې. چه د فلانی سره د عقد کاوه اجازت دې. او فلانی سره اجازت نشته. نو هرکله چې توکيل مطلق دې. او مطلق پخپل اطلاق باندې جاری کيږي. نودا توکيل به هرسړی ته ګډ وی. يعنی وکيل پورتنو خپلوانو سره بيع او شراء کولای شی اګرچه دده په حق کې د هغوی ګواهی نه قبليږي او ددوی نه علاوه نورو خلګو سره به هم د عقد کاوه اجازت وی.

**الاعتراض**® که څوک دا اعتراض اوکړي چې پلار نيکه او ددوی پشان د عقد کاوه په صورت کې د وکيل په حق کې دا تهمت دې. چه وکيل خپله څه نفع اخستل غواړي. نو ددې تهمت په وجه دغه خلګو سره عقد کول جائز کيدل پکار نه دی ؟

**الجواب**® ددې ځواب دادې. چه دلته کې هيڅ قسمه څه تهمت نشته. ځکه چې د وکيل اود هغه د پلار نيکه، اود وکيل اود هغه د ځامنو او نوسو املاک خپلوکې جلا جلا دی. يعنی د هريو ملکيت جلا جلا دې.

**نظيره**® هم دا وجه ده. چه څوی لپاره خپلې وينځې سره وطی کول حلال دی. خود خپل پلار وينځې سره وطی کول حلال نه دی. که د څوی ملک دده د پلار د ملک نه جلا نه وو. نود څوی وينځه به دده او دده د پلار په منځ کې مشترک وه. اوځوی لپاره به دې مشترک وينځې سره وطی کول حلال نه وو. لکه څنګه چې دده لپاره د خپل پلار وينځې سره وطی کول حلال نه دی. بهرحال د پلار او ځوی املاک خپلوکې جلا جلا دی. او منافع هم خپلوکې متباين دی. ځکه چې تباين املاک، انقطاع د منافعو ثابتوی.

**طريقة الاستدلال**® يعنی هرکله چې د هريو ملک جدادې. نود يو لپاره د بل د ملک نه د شرعی د طريقې نه بغير د نفع حاصلولو هيڅ حق هم نشته. او هرکله چې دا خبره ده. نود وکيل خپل پلار، نيکه او ددوی پشان نورو قرابت دارانو سره معامله کولوکې هيڅ نفع هم نشته. او هرکله چې دوکيل څه نفع نشته. نو ددغه خلګو سره عقد کاوه کې به وکيل متهم هم نه وی. او هرکله چې توکيل مطلق دې. او دغه خلګو سره عقد کاوه کې وکيل متهم هم نه دې. نودغه خلګ و سره عقد کاوه کې به هيڅ باک هم نه وی.

**عدم جواز البيع بعبده المديون**® البته د وکيل خپل غيرمديون غلام په لاس خرڅول ( د کوم په ذمه چې هيڅ قرضه نه وی ) جائز نه دی. ځکه چې د وکيل خپل غيرمديون غلام په لاس خرڅول پخپله خپل ځان باندې خرڅول دی.



**وَكَذَا لِلْمَوْلَى حَقٌّ فِي كَسْبِ الْمُكَاتَبِ** دغه ډول دمکاتب په ګټه (او مزدوری) کې د مولا حق وی. **وَيَنْقَلِبُ حَقِيقَةً بِالْعَجْزِ** او دغه حق د مکاتب د بدل کتابت ادا کاوه نه د عاجز کيدلو په وجه حقيقت ملک جوړيږي.

**تشريح: عدم جواز البيع بمكاتبه**® دغه ډول د وکيل د خپل مکاتب په لاس خرڅول جائز نه دی. ځکه چې مولا ته د خپل مکاتب په ګټه ( او مزدوری ) کې حق وی. هم داوجه ده. چه مکاتب ته پخپله ګټه کې په چا باندې د تبرع کاوه اجازت نه وی. اونه د خپل غلام نکاح کولې شی. او کله چې مکاتب د بدل کتابت نه عاجز شی. نوپه دې صورت کې کاتب بيا د مولا غلام کولې شی. اوکوم څه چې دده سره ګټه او مزدوری وی. هغه واړه د مولا ملک جوړيږي. بهرحال هر کله چې د مکاتب په ګټه کې د مولا حق دې. نود مولا ( وکيل ) د خپل مکاتب په لاس خرڅول به هم پخپل ځان خرڅول وی. او وړاندې تير شوی دی. چه پخپل لاس خرڅول جائز نه دی. نود وکيل د خپل مکاتب په لاس خرڅول به هم جائز نه وی.

**وَلَهُ** د امام صاحب رحمه الله دليل دادې. **أَنَّ مَوَاضِعَ التُّهْمَةِ مُسْتَثْنَاةٌ عَنِ الْوَكَالَاتِ**، چې مواضع تهمت د وکالتونو نه مستثنی وی. **وَهٰذَا مَوْضِعُ التُّهْمَةِ** اودا هم موضع د تهمت دې. **بِدَلِيلِ عَدَمِ قَبُولِ الشَّهَادَةِ** په دې دليل سره چې ددې خلګو ګواهی نه قبليږي. **وَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ بَيْنَهُمْ مُتَّصِلَةٌ** او ځکه چې په دوی کې منافع خپل منځ کې متصل دی. **فَصَارَ بَيْعًا مِنْ نَفْسِهِ مِنْ وَجْهٍ**، نودا من وجه پخپل لاس بيع شوه.

**تشريح:** دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه دا خبره منو، چه توکيل مطلق دې. خود تهمت ځايونه د وکالتونو نه مستثنی وی. يعنی وکيل چې د کوم کس سره په معامله کاوه متهم کيږي. د مؤکل دا ړخه هغوی سره د معامله کاوه اجازت نه وی. او په ذکر شوې مسئله کې هم دا مقام د تهمت دې. يعنی پلار نيکه سره معامله کولوکې وکيل متهم دې. ① يو په دې وجه چې د پلار، نيکه، او ځوی په منځ کې د يو بل په حق کې ګواهی نه قبليږي. ② دوهم ځکه چې ددوی په منځ کې منافع خپلوکې متصل دی. ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې پلار د ځوی د مال نه، او زوې د پلار د مال نه نفع اخلی. نود پلار مال من وجه د ځوی مال شو. اود ځوی مال من وجه د پلار مال شو. اوهرکله چې داسې ده. نود وکيل د خپل پلار نيکه په لاس خرڅول من وجه پخپل ځان خرڅول دی. او وړاندې تير شوی دی. چه پخپل لاس خرڅول ناجائز دی. نود وکيل د خپل پلار، نيکه وغيره په لاس خرڅول به هم ناجائز وی.

**وَالْإِجَارَةُ وَالصَّرْفُ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ** او عقد اجاره او عقد صرف هم په دې اختلاف باندې دی.

**تشريح: هذا الاختلاف في مسئلة الاجارة والصرف**® مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه په عقد اجاره او عقد صرف کې هم دا اختلاف دې. او هم دا اختلاف په عقد سلم کې دې. يعنی که يوسړی د اجارې لپاره څوک وکيل کړو. مثلاً وې وئيل. چه ته زما داکور په کرايه باندې ورکړه. يا زما دا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړه. نوکه وکيل خپل پلار، نيکه يا داسې سړی سره عقد اجاره اوکړله. يا نې عقدصرف يا عقد سلم اوکړو. چه د هغه ګواهی دده په حق کې جائز نه ده. نود صاحبينو رحمهما الله په نيز دا عقد جائز دې. اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز نه دې.

### د وکيل بالبيع په قليل او کثير او سامان سره د بيع کولو حکم

**قَالَ** (**وَالْوَكِيلُ بِالْبَيْعِ يَجُوزُ بَيْعُهُ بِالْقَلِيلِ وَالْكَثِيرِ وَالْعَرَضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ**)[1] شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د وکيل بالبيع د ثمن قليل، ثمن کثير او د سامان په عوض

[1]) القول الراجح هو قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی الدرالمختار(٤\٤٥٣) وملتقی (٣\٣٢٤) والدر المنتقی (٣\٣٢٤) ومنحة الخالق (٧\١٦٧) نقلاً عن القول الراجح(٢\١٥٩)۔

خرڅول جائز دی.

**تشريح: جواز التصرف للوكيل مطلقاً** ① دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز که يوسړی بل کس وکيل بالبيع مقرر کړو.مثلاً د خپل غلام خرڅولو ئې وکيل بالبيع کړو.نو وکيل لپاره جائز دی.چه هغه دا غلام د لږ (کم) ثمن په عوض خرڅ کړی.يا ئې د زيات ثمن په عوض خرڅ کړی.او يائې دڅه سامان مثلاً غلې يا څاروی په عوض خرڅ کړی.

وَقَالَا: لَا يَجُوزُ بَيْعُهُ بِنُقْصَانٍ لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ،او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه دده په داسې نقصان سره خرڅول کوم چې خلگ نه اوچتوی.جائز نه دی. وَلَا يَجُوزُ إِلَّا بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ،اود دراهمو او دنانيرو د عوض نه علاوه (په عوض) خرڅول هم جائز نه دی.

**تشريح: مذهب الصاحبين** ® صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه وکيل لپاره نه غبن فاحش سره خرڅول جائز دی.او نه د دراهمو او دنانيرو نه علاوه دڅه سامان په عوض خرڅول جائز دی.غبن فاحش دادې.چه په دې کې په عامه توګه (عام طور) باندې خلگ نه دهوکه کيږی.او په کوم کې چې په عامه توګه (عام طور) باندې خلگ دهوکه کيږی.هغه غبن يسير دې.نود صاحبينو رحمهما الله په نيز په دومره اندازه کم قيمت کې خرڅول د کوم په عوض چې عام خلگ نه خرڅوی. جائز نه دی.البته غبن يسير يعنی معمولی شان نقصان سره خرڅول جائز دی.

لِأَنَّ مُطْلَقَ الْأَمْرِ يَتَقَيَّدُ بِالْمُتَعَارَفِ،ځکه چې د وکالت مطلق امر، متعارف سره مقيد وی. لِأَنَّ التَّصَرُّفَاتِ لِدَفْعِ الْحَاجَاتِ،ځکه چې تصرفات حاجتونو لرې کاوه لپاره وی. فَتَتَقَيَّدُ بِمَوَاقِعِهَا،نود حاجتونو موقعو سره به مقيد وی وَالْمُتَعَارَفُ الْبَيْعُ بِثَمَنِ الْمِثْلِ وَبِالنُّقُودِ،اومتعارف، بيع بثمن المثل او بيع بالنقود ده.

**تشريح: دلائلهما** ® ① دموکل د اړخه وکيل بالبيع لپاره د خرڅولو امر مطلق دې.او امر مطلق متعارف سره مقيد وی.يعنی کومه طريقه چې په خلگو کې متعارف وی.امر مطلق هم هغې سره مقيد وی.ځکه چې تصرفات د ضرورتونو او حاجتونو لرې کاوه لپاره مشروع شوی دی.او هرکله تصرفات د ضرورتونو او حاجتونو لرې کاوه لپاره مشروع دی.نو تصرفات به هم ددې ضرورتونو موقعو سره مقيد وی.او متعارف يعنی مروج دادې.چه په بيع کې ثمن برابر وی.او بيع د نقود يعنی د دراهمو او دنانيرو په عوض وی.نود موکل په امر مطلق سره د خرڅولو امر کول په متعارف طريقه يعنی د ثمن مثل اود نقود په عوض د خرڅولو امر کول دی.او هرکله چې د موکل دا امر د ثمن مثل اود نقود په عوض د خرڅولو امر کول شو.نو وکيل لپاره به ددې امر خلاف غبن فاحش سره يا د سامان په عوض خرڅول جائز نه وی.

وَلِهَذَا يَتَقَيَّدُ التَّوْكِيلُ بِشِرَاءِ الْفَحْمِ وَالْجَمْدِ وَالْأُضْحِيَّةِ بِزَمَانِ الْحَاجَةِ،او په دې وجه د کوئلې (سکارو) واوزې،اود قربانۍ د څاروی اخستلو توکيل به د اړتيا زمانې سره مقيد وی.

**تشريح: التصرفات مقيدة بمواقع الضرورة** ® اوچونکه تصرفات د ضرورتونو موقعو سره مقيد وی.په دې وجه که يوکس يوسړې د کوئلې (سکارو) يا واوزې يا د قربانۍ څاروی اخستلو لپاره وکيل کړو.نودا توکيل به د اړتيا زمانې سره مقيد وی.يعنی سکارو اخستلو توکيل به هم دې کال د يخنۍ زمانې سره مقيد وی. او د واوزې اخستلو توکيل به هم دې کال د ګرمۍ زمانې سره مقيد وی. او د قربانۍ اخستلو توکيل به هم دې کال د قربانۍ ورځو سره يا ددې نه وړاندې ورځو سره مقيد وی.تردې که وکيل دا شيان راروان کال واخستل.نود موکل د حکم د مخالفت په وجه به دا اخستل موکل باندې لازم نه وی.بلکه پخپله وکيل باندې به لازم وی.

وَلِأَنَّ الْبَيْعَ بِغَبْنٍ فَاحِشٍ بَيْعٌ مِنْ وَجْهٍ هِبَةٌ مِنْ وَجْهٍ،او ځکه چې غبن فاحش سره بيع من وجه بيع ده.او من وجه هبه ده.

**تشريح: بيعه بالغبن الفاحش بيع وهبة** ® دوهم دليل دا دې چې غبن فاحش سره بيع من وجه بيع ده.خو من وجه



هبه ده.ځکه هرکله چې د زر روپو شئ د پنځه سوه روپو په عوض خرڅ کړې شو.نو ګويا بائع نيم شئ خرڅ کړو.او نيم ئې هبه کړو.هم دا وجه ده.که په مرض وفات کې اخته بيمار غبن فاحش سره څه شئ خرڅ کړو.نو د هغې اعتبار به د ثلث مال نه کيږی.يعنی که داڅيز دده د مال ثلث يا د ثلث نه کم وی.نودا بيع به نافذ کولې شی.ګنی نه به شی نافذ کولې.

غبن فاحش سره من وجه بيع ده.او من وجه هبه ده.په دې وجه د صغير پلار له د صغير سامان، او وصی له د مړی د نابالغ اولاد سامان غبن فاحش سره خرڅول جائز نه دی.ځکه چې پلار او وصی ته د نابالغ سامان هبه کاوه اجازت نشته.بهرحال غبن فاحش سره خرڅول من وجه هبه ده.او وکيل بالبيع د خرڅولو وکيل وی.د هبه وکيل نه وی.نو هرکله چې وکيل بالبيع د خرڅولو وکيل وی.او د هبه کاوه وکيل نه وی.نوصرف مبيع به بيع بغبن الفاحش ته ګډ نه وی.اود وکيل غبن فاحش سره خرڅول به د موکل د حکم مخالفت وی.او وکيل لپاره د موکل د حکم مخالفت جائز نه دې.په دې وجه غبن فاحش سره د وکيل بالبيع خرڅول به هم جائز نه وی.

وَكَذَا الْمُقَايَضَةُ بَيْعٌ مِنْ وَجْهٍ شِرَاءٌ مِنْ وَجْهٍ،دغه ډول د سامان بيع د سامان په عوض من وجه بيع ده. فَلَا يَتَنَاوَلُهُ مُطْلَقُ اسْمِ الْبَيْعِ اوهم او من وجه شراء ده.نو مطلقاً لفظ د بيع به دې ته ګډ نه وی. وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُهُ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ.په دې وجه غبن فاحش سره د بيع کولو، پلار او وصی مالك نه وی.

**تشريح: كون المقايضة بيعاً وشراء** ® دغه ډول مقايضه يعنی سامان د سامان په عوض خرڅول من وجه بيع دې.او من وجه شراء ده.بيع خو ځکه ده.چه بائع د خپل ملك نه سامان خارج کړې دې.او شراء ځکه ده.چه سامان دده په ملك کې داخل شوې دې.نو هرکله چې مقايضه من وجه بيع ده.او من وجه شراء ده.نو لفظ د بيع به بيع مقايضه ته نه شامليږي.او هرکله چې لفظ د بيع، بيع مقايضه ته ګډ نشو.نود وکيل د مقايضه په طور باندې د موکل سامان د سامان په عوض خرڅول به د موکل دحکم مخالفت وی.اود موکل د حکم مخالفت چونکه وکيل لپاره جائز نه دې.په دې وجه وکيل لپاره د موکل سامان د سامان په عوض خرڅول به هم جائز نه وی.

وَلَهُ اوهم د حضرت امام صاحب رحمه الله دليل دادې. أَنَّ التَّوْكِيلَ بِالْبَيْعِ مُطْلَقٌ چې توکيل بالبيع مطلق دې. فَيَجْرِي عَلَى إِطْلَاقِهِ فِي غَيْرِ مَوْضِعِ التُّهْمَةِ،نودا به د تهمت په ځائې کې خپل اطلاق باندې جاری کيږی.

**تشريح: دلائله** ® دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه توکيل بالبيع مطلق دې.يعنی هيڅ شئ سره مقيد نه دی.او مطلق د تهمت د ځائې نه علاوه کې خپل اطلاق باندې جاری کيږی.نو دلته کې به هم توکيل بالبيع خپل اطلاق باندې جاری کيږی.يعنی په کوم چې د بيع اطلاق صحيح وی.توکيل به هغې ته ګډ وی.نو غبن فاحش سره بيع، او د سامان په عوض بيع هم يو قسم بيع ده.توکيل به دې بيوع ته هم ګډ وی.او هرکله چې توکيل دې بيوع ته ګډ دی.نوغبن فاحش سره بيع کول اود سامان په عوض بيع کاوه سره د موکل د حکم مخالفت نه کيږی.نو وکيل لپاره غبن فاحش سره بيع کول به هم جائز وی.اود سامان په عوض بيع کول به هم جائز وی.

وَالْبَيْعُ بِالْغَبْنِ أَوْ بِالْعَيْنِ مُتَعَارَفٌ عِنْدَ شِدَّةِ الْحَاجَةِ إِلَى الثَّمَنِ او په غبن فاحش، يا د سامان په عوض بيع کول هغه وخت متعارف دی وَالتَّبَرُّمِ مِنَ الْعَيْنِ، کله چې د ثمن حاجت زيات وی.او په دې سامان تنګ (او ستومانه) شی.

**الجواب عن دليلهما** ® په دې عبارت سره د صاحبينو رحمهما الله د دليل ځواب چې دا منو.چه مطلق متعارف سره مقيد وی.خود صاحبينو رحمهما الله دا وئيل.چه په بيع کې متعارف دا دی.چه د ثمن مثل عوض وی.اود نقود (دراهم او دنانيرو) په عوض وی.غلط دی.ځکه که د ثمن سخت اړتيا وی.نو غبن فاحش سره بيع کول هم متعارف دی.دغه شان که څوك سړې د سامان نه تنګ (او ستړې) شی.نوهغه دا سامان په هرشان خرڅول غواړی.که د سامان په عوض ئې ولې خرڅ نکړی.بهرحال په دې صورت کې د سامان په عوض خرڅول هم

متعارف دي.

وَالْمَسَائِلُ مَمْنُوعَةٌ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ. او مسائل د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې ممنوع دی عَلَى مَا هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْهُ. لکه څنګه چې د امام صاحب رحمه الله نه نقل دی.

الجواب عن استشهادهما: دې عبارت ره د صاحبینو رحمهما الله د اړخه د پیش شوی استشهاد (او استدلال) خواب ورکړې شوې دې. چې د سکارو، واوړې، او د قربانۍ د څاروی اخستلو توکیل د حاجت زمانې سره مقید کیدل، د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله د قول په بناء باندې نه منو. یعنی د حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز ددې څیزونو توکیل هم مطلق دې. د حاجت (او ضرورت) زمانې سره مقید نه دې. وکیل ته په هره زمانه کې د اخستلو اجازت دې. نو هرکله چې د امام صاحب رحمه الله په نیز ددې څیزونو د اخستلو توکیل هم مطلق دې. او د هیڅ یوې زمانې سره مقید نه دې. نو ددې مسائلو په ذریعه د حضرت امام صاحب رحمه الله خلاف استشهاد کول څنګه صحیح کیدای شي؟

وَأَنَّهُ بَيْعٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ، او غبن فاحش سره بیع کول پوره طور باندې بیع ده حَتَّى أَنَّ مَنْ حَلَفَ لَا يَبِيعُ. تردې که یوکس قسم اوخوړلو چه زه به بیع نه کوم. يَحْنَثُ بِهِ، نو هغه به غبن فاحش سره په بیع کاوه حانث کیږي.

په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د دوهم دلیل خواب دې. حاصل د خواب دا دې. چې د صاحبینو رحمهما الله دا خبره (چې غبن فاحش سره د بیع او سامان په عوض بیع، من وجه بیع ده. او من وجه بیع نه ده) مونږ نه منو. بلکه دا دواړه من وجه بیع دی.

ددې دلیل دادې. که یوکس قسم اوخوړلو چه زه به بیع نه کوم. او داسې ئې اوونیل. «والله لا ابیع» او بیا هغه په غبن فاحش سره څه شي خرڅ کړو. یا ئې د سامان په عوض څه شي خرڅ کړو. نو دا سړې حانث کیږي. نو که غبن فاحش سره خرڅول، اود سامان په عوض خرڅول من کل وجه بیع نه وه. نودا سړې به نه حانث کیدلو. ددې سړې پخپل قسم کې حانث کیدل ددې خبرې دلیل دې. چه دا دواړه من کل وجه بیع دی. اوهرکله چې دا دواړه (یعنی غبن فاحش سره خرڅول، اود سامان په عوض خرڅول) په باب د یمین کې من کل وجه بیع دی. نو په باب د وکالت کې به هم من کل وجه بیع وي.

غَيْرَ أَنَّ الْأَبَ وَالْوَصِيَّ لَا يَمْلِكَانِهِ خودا چې پلار او وصی ددې مالك نه دي. مَعَ أَنَّهُ بَيْعٌ اسره ددې چې دا من كل وجه بیع ده. لِأَنَّ وِلَايَتَهُمَا نَظَرِيَّةٌ څکه چې ددوی دواړو ولایت نظري دې. وَلَا نَظَرَ فِيهِ، او غبن فاحش سره بیع کاوه کې هیڅ نظر نشته.

دا عبارت د سوال مقدر خواب دې سوال دادې چه غبن فاحش سره بیع که من کول وجه بیع ده. نو پلار او وصی ته د صغیر مال په غبن فاحش سره د خرڅولو اختیار ور کاوه پکار دی. حالانکه دوی ته اختیار نشته؟ خواب ددې خواب دادې چه په صغیر باندې د پلار او وصی ولایت نظري دې. یعنی صغیر باندې د ولایت حاصلیدلو شرط دادې چه ولی په صغیر باندې شفقت اوکړي. اود هغه په حق کې خیر لټونکې وي. خو په غبن فاحش سره بیع کاوه کې د پلار او وصی د اړخه چونکه د صغیر په حق کې د هیڅ شفقت نه دې خودلې شوې په دې وجه پلار او وصی ته به د صغیر مال غبن فاحش سره د خرڅولو قطعاً ولایت حاصل نه وي.

وَالْمُقَايَضَةُ شِرَاءٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او د سامان بیع د سامان په عوض پوره طور باندې اخستل هم دی. وَبَيْعٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او پوره طور باندې بیع هم ده. لِوُجُودِ حَدِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا څکه چې په دوی کې د هریو تعریف موجود دې.

تشریح: په دې عبارت سره د صاحبینو رحمهما الله د دوهم دلیل د دوهم جزء خواب دې. حاصل دادې. چه د صاحبینو رحمهما الله دا فرمائیل. چه مقایضه یعنی د سامان په عوض خرڅول من وجه بیع ده. او من وجه شراء ده. مونږ نه منو. بلکه دا من کل وجه بیع هم ده. او من کل وجه شراء هم ده. څکه چې په دې باندې د بیع او شراء دواړو کې د هریو تعریف صادقیږي. څکه بیع د خپل ملك نه یو شي اوبنکل، اود بل شي خپل ملك کې داخلولو ته



وائی. او شراء د بل شي خپل ملك کې داخلولو لپاره خپل ملك نه څه شي اوبنکلو ته وائی. په بیع مقایضه باندې چونکه دا دواړه تعریفونه صادقیږي. په دې وجه بیع مقایضه من کل وجه بیع هم ده. او من کل وجه شراء هم ده. او هرکله چې بیع مقایضه من کل وجه بیع ده. نو وکیل بالبیع ته به د موکل د اړخه د بیع مقایضه کاوه پوره پوره حق وي. او هرکله چې وکیل بالبیع ته د بیع مقایضه کاوه حق دې. نو وکیل بالبیع لپاره به د موکل مال د سامان په عوض خرڅول هم جائز وي.

## د وکیل بالشراء په مثل قیمت یا غبن یسیر سره د اخستلو حکم

قَالَ (وَالْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ يَجُوزُ عَقْدُهُ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ) اود وکیل بالشراء ته د مثل قیمت په عوض، عقد کول جائز دی. وَزِيَادَةٍ يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِي مِثْلِهَا، اود داسې زیاتوالی په عوض، چې دهغې په مثل کې خلګ دهوکه کیږي.

صورة المسئلة: که یوکس څوك سړې د څه شي اخستلو وکیل کړو. مثلاً وې وئیل چه زما لپاره یو غلام واخله. نو ددې وکیل بالشراء لپاره د مثل قیمت په عوض یعنی د دومره ثمن په عوض کوم چې د قیمت برابر وي. اخستل ناجائز دی. اود غبن یسیر زیاتوالی سره هم اخستل جائز دی. البته د غبن فاحش زیاتوالی سره اخستل ناجائز دی. یعنی غبن یسیر سره دا اخستلو په صورت کې اخستل به موکل باندې لازم وي. او غبن فاحش سره د اخستلو په صورت کې به اخستل وکیل باندې لازم وي. خودا حکم هغه وخت دې. کله چې د ښار خلګو ته ددې اخستلی شوی شي هیڅ قیمت معلوم نه وي. خو که قیمت معلوم وي. نو وکیل لپاره نه غبن فاحش سره اخستل جائز دی. اونه غبن یسیر سره اخستل جائز دی. بهر حال د قیمت نه معلومیدلو په صورت کې غبن فاحش سره اخستل ناجائز څکه دی. چه په دې کې تهمت متحقق دې په دې طریقه چې وکیل دا شي خپل ځان لپاره اخستې وي. خوکله چې په دې کې خساره (او تاوان) محسوس شو. نودا ئې موکل باندې وراچولی وي. یعنی دا ئې وئیلي وي. چه ما دا شي موکل لپاره اخستې دې. اود داسې تهمت په صورت کې عقد وکیل باندې نافذ کیږي. موکل باندې نه نافذ کیږي. نو ثابته شوه. چه غبن فاحش سره عقد شراء کول وکیل لپاره ناجائز دی. خوکه ددې باوجود وکیل بالشراء واخستلو نودا اخستل به پخپله وکیل لپاره وي. موکل لپاره به نه وي. هم ددې دلیل په وجه (کوم چې تیرشو).

(وَلَا يَجُوزُ بِمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِي مِثْلِهِ) اود داسې زیاتوالی په عوض چې د هغې په مثل کې خلګ دهوکه نه خوري. جائز نه ده. لِأَنَّ التُّهْمَةَ فِيهِ مُتَحَقِّقَةٌ څکه چې غبن فاحش سره اخستلو کې تهمت متحقق دې. فَلَعَلَّهُ اشْتَرَاهُ لِنَفْسِهِ، لکه ممکن ده. چې وکیل دا د خپل ځان لپاره اخستې وي. فَإِذَا لَمْ يُوَافِقْهُ خو کله چې دده موافق نشو. أَلْحَقَهُ بِغَيْرِهِ، نو ده دا د بل په ذمه واچولو. عَلَى مَا مَرَّ لکه څنګه چې وړاندې تیر شوی دی. حَتَّى لَوْ كَانَ وَكِيلًا بِشِرَاءِ شَيْءٍ بِعَيْنِهِ تردې که د معین شي اخستلو وکیل وي. قَالُوا يَنْفُذُ عَلَى الْآمِرِ نو مشائخ فرمائی. چه دا به په موکل باندې نافذ کولې شي. لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ شِرَاءَهُ لِنَفْسِهِ، څکه چې وکیل ده (غلام) لره (د غلام) د خپل ځان لپاره د اخستلو نه دې مالك کړې.

عامة المشائخ فرمائی. که یوسړې د معین شي اخستلو وکیل وي. اوهغه دغه معین شي غبن فاحش سره واخستلو. نودا اخستل به موکل باندې نافذ وي. او په وکیل به نافذ نه وي. څکه چې په دې صورت کې وکیل نشي متهم کیدلې. څکه چې وکیل ته ددې شي خپل ځان لپاره د اخستلو اجازت نه وي. نو په دې صورت کې به دا احتمال نه پیدا کیږي. چه وکیل بالشراء په دې صورت کې متهم دې. نو په دې صورت کې به د غبن فاحش باوجود اخستل جائز وي. یعنی په موکل به نافذ او لازم وي.

وَكَذَا الْوَكِيلُ بِالنِّكَاحِ دغه ډول وکیل بالنکاح إِذَا زَوَّجَهُ امْرَأَةً بِأَكْثَرَ مِنْ مَهْرِ مِثْلِهَا کله چې د مهرمثل نه د زیات په عوض د یوې ښځې خپل موکل سره نکاح اوکړله. جَازَ عِنْدَهُ نودا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز دی. لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْإِضَافَةِ إِلَى الْمُوَكِّلِ فِي الْعَقْدِ، څکه چې په عقد نکاح کې موکل اړخ ته نسبت کول ضروري دی. فَلَا

تَمَكَّنُ فِيْهِ التُّهْمَةُ نو دا تهمت به نه متمكن كيږي. وَلَا كَذٰلِكَ الْوَكِيْلُ بِالشِّرَاءِ او وكيل بالشراء داسې نه دي. لِأَنَّهُ يُطْلَقُ الْعَقْدُ ځكه چي هغه عقد شراء مطلق ساتي.

دغه ډول كه وكيل بالنكاح د يوې ښځې سره د خپل موكل نكاح د مهرمثل نه د زيات په عوض اوكړله.نو د حضرت امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز دا نكاح جائز ده.ځكه چي په عقد نكاح كي د نكاح نسبت موكل اړخ ته كول ضروري دي.نو ددې تهمت هيڅ ګنجائش نشته.چه وكيل اولاً خپل ځان سره نكاح كړې وي.او بيا ئې په موكل باندې وراچولې وي.ددې په خلاف وكيل بالشراء دې،چه هغه عقد شراء مطلق ساتي.چه صرف،، اشتريت،، وائي.او،،اشتريت لفلان،، نه وائي.يعنې وكيل بالشراء باندې عقد شراء موكل اړخ ته منسوب كول ضروري نه دي.بلكه هغه دا مطلق هم ساتلې شي.نودا تهمت متمكن ( او پيدا) كيداې شي.چه ده د خپل ځان لپاره اخستل كړې وي.بيا كله چې تاوان معلوم شو.نو دا ئې د موكل په سر ورتپلې وي.نو ددې توپير په وجه وكيل بالنكاح لپاره مهرمثل نه د زيات په عوض د موكل نكاح كول جائز ده.خو وكيل بالشراء لپاره غبن فاحش سره اخستل جائز نه دي.

## د غبن فاحش تعريف

قَالَ (وَالَّذِيْ لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيْهِ او كوم تاوان چې خلګ نه اوچتوي.هغه دي. مَا لَا يَدْخُلُ تَحْتَ تَقْوِيْمِ الْمُقَوِّمِيْنَ، كوم چې د اندازه لګونكو د اندازې لاندې داخل نه وي.

**الغبن الفاحش**⊛په دې عبارت سره غبن فاحش تعبيركړې دي.اود غبن فاحش تعريف ئې كړې دي.چه غبن فاحش د داسې تاوان نوم دي.كوم چې د د تجارت د ماهرينو په اندازه كي داخل نه وي.يعنې كوم خلګ چې د تجارت مالكان دي.هغوى كي څوك سړې د دومره مال په عوض اندازه نه كوي.بهرحال هركله چې ﴿لا يتغابن الناس فيه﴾ غبن فاحش دي.نو ددې مقابل ﴿لا يتغابن الناس فيه﴾ به غبن يسير وي.او هركله چې د غبن فاحش تعريف ﴿ما لايدخل تحت تقويم المقومين﴾ دي.نود غبن يسير تعريف ﴿مايدخل تحت تقويم المقومين﴾ وي.يعنې داسې تاوان كوم چې د تجارت د ماهرينو په اندازه كي نه راځي.هغه غبن يسير دي.

وَقِيْلَ فِي الْعُرُوْضِ "الاول نيم" او وئيلې شوي دي.چه په سامان كي د لسو شئ په لس نيم باندې وي وَفِي الْحَيَوَانَاتِ "الاول يازده" او په ځاروو كي د لسو ځاروو په يوولس وي. وَفِي الْعَقَارَاتِ "الاول دوازده") او په مځكه وغيره غيرمنقول جائيداد كي دلسو په دولس وي.

ددې كلام ظاهر په دې دال دي.چه دا د غبن فاحش تفسير دي.يعنې په سامان كي غبن فاحش دادې.چه د لس درهمو شئ په لس نيم درهمه كي وي.په ځاروو كي غبن فاحش دادې.چه د لس درهمو حيوان (ځاروې) په يوولس درهمه كي وي.او په غيرمنقوله جائداد مځكه ، كور وغيره كي غبن فاحش دادې.چه د لس درهمو مځكه په دولس درهمه كي وي.خو صاحب د فتح القدير فرمائي.زما په نيز حق دادې.چه دا د غبن يسير تفسير دي.ځكه چې دا خبره د جمهور فقهاء اود عامة المشائخ د ذكر شوي بيان مطابق ده.او هم دا صاحب د نهايه (رحمه الله) ليكلي دي.نو غبن كه د ذكرشوي مقدار مطابق وي.نوهغې ته غبن يسير وائي.او عقد شراء به په موكل باندې لازم او نافذ وي.او كه ددې مقدار نه زيات وي.نو هغې ته غبن فاحش وائي.او عقد شراء به په وكيل باندې لازم او نافذ وي.

لِأَنَّ التَّصَرُّفَ يَكْثُرُ وُجُوْدُهُ فِي الْأَوَّلِ ځكه چې د تصرف وجود اول كي زيات دي. وَيَقِلُّ فِي الْأَخِيْرِ او په آخر كي كم دي. وَيَتَوَسَّطُ فِي الْأَوْسَطِ او په اوسط كي منځنې دي. وَكَثْرَةُ الْغَبْنِ لِقِلَّةِ التَّصَرُّفِ اود غبن زياتوالې د قلت تصرف په وجه وي.

**دليله**⊛( چې ذكر شوې مقدار غبن يسير،او ددې نه زيات غبن فاحش دي) دادې.چه غبن هغه وخت زيات وي.كله چې د سړي تجربه كمه وي.او كله چې تجربه زياته وي.غبن كم وي.اود تجربې قلت او كثرت، د



تصرف قلت او كثرت سره كيږي.يعنې په تصرف او زيات تجارت سره تجربه زياتيږي.اود تصرف او تجارت په كموالي سره تجربه كمه وي.اودا خبره ښكاره ده.چه په سامان كي تجارت زيات واقع كيږي.او په مځكه وغيره غيرمنقوله جائدادكي تجارت كم واقع كيږي.او په ځاروو كي د تجارت وقوع اوسط درجې وي.بيا چونكه لس درهمه داسې نصاب دي.چه ددې په سرقه سره قطع د يد كيږي.په دې وجه د غبن يسير په تفسير كي لس درهمه اصل ګرځولې شوي دي.او يو درهم داسې مال دي.چه ددې په وجه انسان په قيدخانه كي اچولې شي.هم دا وجه ده.چه د تنګئ او بخل په موقعوكي ( تجارت كي) يو درهم نه بې پرواهي نه كيږي. يعنې بائع د ثمن مقرركيدلو نه روسته يو درهم پريښول جائز نه ګڼړي.اونه مشتري د يو درهم زياتي وركول جائز ګڼړي.

## د پوره غلام د خرڅولو د وكيل دنيم غلام خرڅولو حكم

قَالَ (وَإِذَا وَكَّلَهُ بِبَيْعِ عَبْدِهِ او كله ئې چې د خپل غلام د خرڅولو وكيل كړو. فَبَاعَ نِصْفَهُ نو وكيل نيم غلام خرڅ كړو جَازَ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ) .نود حضرت امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز جائز دي.

**صورته**⊛ ① د حضرت امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز يوسړي بل كس د خپل غلام خرڅولو وكيل كړو.اود پوره يا نيم خرڅولو قيد سره ئې مقيد نكړو.نو وكيل نيم غلام خرڅ كړو.نو دابيع جائز ده.اوددې نفاذ به په موكل باندې وي.

لِأَنَّ اللَّفْظَ مُطْلَقٌ عَنْ قَيْدِ الْاِفْتِرَاقِ وَالْاِجْتِمَاعِ ځكه چې لفظ د كل يا د بعض قيد نه مطلق دي.

**دليله**⊛د حضرت امام ابوحنيفه (رحمه الله) دليل دادې.چه د موكل كلام، يعنې دغلام خرڅولو حكم مطلق دي.نه په دې كي د پوره غلام خرڅولو قيد دې.اونه د نيم غلام خرڅولو قيد دې.او ﴿المطلق يجرى على إطلاقه﴾ لاندې مطلق پخپل اطلاق باندې جاري كيږي.نو ددې اطلاق پيش نظر به وكيل ته د پوره غلام خرڅولو اجازت وي.اود نيم غلام خرڅولو به هم اجازت وي.او هركله چې د نيم خرڅول جائز دي.نو دده نيم غلام خرڅول به جائز وي.او ددې نفاذ به په موكل باندې كيږي.

أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ بَاعَ الْكُلَّ بِثَمَنِ النِّصْفِ آيا ته نه ګورې.كه ده پوره غلام د نصف په عوض خرڅ كړو. يَجُوْزُ عِنْدَهُ نود امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز جائز دي. فَإِذَا بَاعَ النِّصْفَ بِهِ نوهركله چې د نصف ثمن په عوض ئې نصف غلام خرڅ كړو أَوْلٰى نو په درجه اولى به جائز وي.

**توضيحه**⊛كه مذكوره وكيل پوره غلام د نصف ثمن په مقدارعوض باندې خرڅ كړي.مثلاً د زر روپو غلام دپنځه سوه روپو په عوض خرڅ كړي.نود حضرت امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز جائز دي.نو هركله چې د امام صاحب (رحمه الله) په نيز پوره غلام د نصف ثمن په مقدار عوض باندې خرڅول جائز دي.نو نيم غلام د نصف ثمن په عوض خرڅول به په درجه اولى جائز وي.ځكه چې نيم غلام د نيم ثمن په عوض خرڅول،او د نيم غلام ځان سره ساتلو كي دموكل زياته نفع ده.په نسبت ددې چې پوره غلام د نصف ثمن په عوض خرڅ كړې شي.ځكه چې په ړومبى صورت كي به موكل ته نصف ثمن هم حاصل شي.او نيم غلام به هم هغه سره پاتې وي.او په دوهم صورت كي به نصف ثمن هم حاصل شي.خود غلام هيڅ برخه به دده سره پاتې نشي.نو ړومبې صورت موكل لپاره انفع ( زياته نفع وركونكې) وي.او دوهم صورت به نافع نه وي.بيا هركله چې په غير انفع صورت كي ( پوره غلام د نصف ثمن په عوض) بيع جائز ده.نو انفع صورت ( د نصف ثمن په عوض) كي به بيع په درجه اولى جائز وي.

**الاعتراض**⊛ خوكه تاسو دا اعتراض اوكړئ.چه پوره غلام د نصف ثمن په عوض خرڅول ځكه جائز دي.چه دا بيع د شركت عيب ته متضمن نه ده.او نصف غلام د نصف ثمن په عوض خرڅول ځكه ناجائز دي.چه په دې كي د شركت عيب دي.يعنې په غلام كي به موكل او مشتري دواړه شريك شي.حالانه شركت عيب

دي.نونصف غلام د نصف ثمن په عوض خرڅولو کي چونکه د شرکت عيب دي.ځکه چې دا بيع د وکيل د
اړخه د خپل مولا مخالفت الى شر دي.او وکيل لپاره د خپل مؤکل مخالفت الى شر جائز نه دي.ځکه به د
وکيل دا بيع جائز نه وي.او ددي نفاذ به مؤکل باندې نه وي.او پوره غلام د نصف ثمن په عوض خرڅولوکي
د شرکت عيب نشته.په دې وجه په دې بيع کي د مؤکل مخالفت الى شر هم نه لازميږي.او هرکله چې په دې
بيع کي د مؤکل مخالفت الى شر نه لازميږي.نودا بيع به هم جائز وي.او په مؤکل به نافذ وي ؟

**الجواب**۞ زموږ د اړخه ددې ځواب دادې.چه نيم غلام د نيم ثمن په عوض خرڅولوکي اګرچه د شرکت عيب
لازميږي.او پوره غلام د نيم ثمن په عوض خرڅولوکي د شرکت عيب نه لازميږي.خو پوره غلام د نصف ثمن
په عوض خرڅولوکي د مؤکل نقصان زيات دې.او نيم غلام د نيم ثمن په عوض خرڅول، يعنی زيات نقصان
برداشت کول جائز دی.نو نصف غلام د نصف ثمن په عوض خرڅول،يعنی کم نقصان برداشت کول به په
درجه اولی جائز وي.

**فائدة قيد عنده**۞ د «يجوز عنده» قيد ني ځکه اولګولوچه د د صاحبينو رحمهما الله په نيز دا ناجائز دی.ځکه چې
پوره غلام د نصف ثمن په عوض خرڅولوکي غبن فاحش دې.او غبن فاحش سره خرڅول د صاحبينو رحمهما الله په
نيزناجائز دی.لکه څنګه چې وړاندې تير شوی دی.

| (وَقَالَا: لَا يَجُوزُ)او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه جائز نه دی. لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَارَفٍ ځکه چې دا متعارف نه دی. |
|---|

② او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه دا بيع جائز نه ده.يعنی ددې بيع نفاذ به په مؤکل باندې نه وي.

**دلائلهما**۞ ① دليل دادې.چه د مؤکل د خپل غلام خرڅولو وکيل کول مطلق دی.لکه څنګه چې د امام
صاحب رحمه الله په دليل کي تير شو. «ان اللفظ مطلق» او مطلق متعارف ته راجع وي.يعنی د مطلق نه متعارف
مراد وي.او نيم غلام خرڅول غير متعارف دی.بهرحال هرکله چې توکيل د بيع العبد مطلق دې.اود مطلق نه
متعارف مراد وي.او نيم غلام خرڅول غيرمتعارف دی.نودا توکيل به نيم غلام خرڅولو ته ګډ نه وي.او
هرکله چې دا توکيل د نيم غلام خرڅولو ته ګډ نه دې.نود وکيل نيم غلام خرڅول به د مؤکل د حکم مخالفت
کول وي.اود وکيل د خپل مؤکل د حکم مخالفت کول جائز نه دی.په دې وجه د وکيل نيم غلام خرڅول به هم
جائز نه وي. ② دوهم دليل دادې.چه د نيم غلام خرڅولو په صورت کي مؤکل او مشتری چونکه دواړه په
غلام کي شريکيږي.اوشرکت عيب دې.په دې وجه به ددې شرکت په وجه مؤکل ته ضرر وي.او وکيل ته د
داسې تصرف بالکل اجازت نه وي.په کوم کي چې مؤکل ته ضرر لاحق کيږي.نو هرکله چې په دې تصرف
کي ، يعنی په نيم غلام خرڅولوکي مؤکل ته ضرر لاحق کيږي.نو وکيل ته به د نيم غلام خرڅولو اجازت نه
وي.خو ددې باوجود که وکيل نيم غلام خرڅ کړي.نودا خرڅول به جائز نه وي.

| لِمَا فِيهِ مِنْ ضَرَرِ الشَّرِكَةِ او ځکه چې په دې کي د شرکت ضرر دې. (إِلَّا أَنْ يَبِيعَ النِّصْفَ الْآخَرَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَصِمَا) خو دا چې نصف آخر د وکيل او مؤکل د مخاصمه نه وړاندې خرڅ کړي. لِأَنَّ بَيْعَ النِّصْفِ قَدْ يَقَعُ وَسِيلَةً إِلَى الِامْتِثَالِ ځکه نصف خرڅول کله د مؤکل د حکم د تعميل ذريعه وي. بِأَنْ لَا يَجِدَ مَنْ يَشْتَرِيهِ جُمْلَةً په دې طريقه چې وکيل ته داسې سړې ملاؤ نشي. چې پوره غلام په يوځل واخلي. فَيَحْتَاجُ إِلَى أَنْ يُفَرِّقَ نو هغه به متفرق ( جلا جلا ) خرڅولو ته محتاج وي فَإِذَا بَاعَ الْبَاقِيَ قَبْلَ نَقْضِ الْبَيْعِ الْأَوَّلِ نو هرکله چې د نصف اول بيع ماتيدلو نه وړاندې ني پاته نصف خرڅ کړو. تَبَيَّنَ أَنَّهُ وَقَعَ وَسِيلَةً نو ښکاره شوه.چه نصف اول خرڅول د حکم د تعميل ذريعه واقع شوې وه. وَإِذَا لَمْ يَبِعْ اوکله چې وکيل پاته نصف خرڅ نکړو. ظَهَرَ أَنَّهُ لَمْ يَقَعْ وَسِيلَةً نو ښکاره شوه.چه هغه د تعميل حکم ذريعه نه وه واقع شوې فَلَا يَجُوزُ نو جائز به نه وي. وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ عِنْدَهُمَا اودا د صاحبينو رحمهما الله په نيز استحسان دې. |
|---|

ﺍﺩا دوهم دليل دې خو په هغه وخت کي چه «لما فيه....الخ» واؤ سره اوونيلی شي.اود واؤ نه بغير «لما فيه.....



الخ» اوونيلی شي.لکه څنګه چې د هدايه په بعض نسخوکي دی.نودا عبارت به په اصل مسئله باندې د
صاحبينو رحمهما الله د اړخه دوهم دليل نه واقع کيږي.بلکه په دې صورت کي به دا عبارت د نيم غلام د بيع د
غيرمتعارف کيدلو باندې دليل وي.او داسې به ونيلې شي.چه د نيم غلام بيع غيرمتعارف ځکه ده.چه په
دې کي د شرکت ضرر دې.والله اعلم بالصواب

ﺍنود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز نه ده.البته که وکيل دويمه نيمه برخه د مؤکل اود وکيل د جګړې نه وړاندې
خرڅه کړله.نود نيم غلام خرڅول د صاحبينو رحمهما الله په نيز هم جائز دی.ځکه چې د نيم غلام خرڅول کله کله د
دمؤکل د حکم د تعميل ذريعه جوړيږي.په دې طريقه چې وکيل ته داسې سړې ملاؤ نشي.چه هغه په يوځل
پوره غلام واخلي.نو ددې د نيم نيم خرڅولو اړتيا راپيښيږي.نوهرکله چې د نصف اول د بيع ماتيدلو نه
وړاندې وکيل پاته نصف هم خرڅ کړو.نو ښکاره شوه.چه د نصف اول خرڅول د مؤکل د حکم پوره کاوه
ذريعه واقع شوې وه.او هرکله چې د نصف اول خرڅول د مؤکل د حکم پوره کاوه ذريعه واقع شوه.نو وکيل
لپاره د نصف اول خرڅول به هم جائز وي.او هرکله چې نصف اول ني خرڅ نکړو.نو ښکاره شوه.چه د نصف
اول خرڅول د مؤکل د حکم پوره کاوه ذريعه نه وه.او هرکله چې په دې صورت کي د نصف اول خرڅول د
مؤکل د حکم پوره کاوه ذريعه نشوه.نو په دې صورت کي به وکيل لپاره د نصف اول خرڅول هم جائز نه وي.

### د پوره غلام اخستونکي د وکيل د نيم غلام اخستلو حکم

| (وَإِنْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَبْدٍ او که د غلام اخستلو وکيل ني کړو. فَاشْتَرَى نِصْفَهُ نو وکيل نيم غلام واخستلو . فَالشِّرَاءُ مَوْقُوفٌ نودا اخستل به موقوف وي. فَإِنْ اشْتَرَى بَاقِيَهُ بيا که وکيل پاته نيم غلام هم واخستلو. لَزِمَ الْمُوَكِّلَ) نودا اخستل به مؤکل باندې لازم وي. لِأَنَّ شِرَاءَ الْبَعْضِ قَدْ يَقَعُ وَسِيلَةً إِلَى الِامْتِثَالِ ځکه چې د غلام د يوې برخې (حصې) اخستل کله کله د مؤکل د حکم پوره کاوه ذريعه واقع کيږي. بِأَنْ كَانَ مَوْرُوثًا بَيْنَ جَمَاعَةٍ په دې طريقه چې هغه غلام د يوجماعت په منځ کي موروث وي. فَيَحْتَاجُ إِلَى شِرَائِهِ شِقْصًا شِقْصًا نو وکيل به په برخه حصه د اخستلو محتاج وي. فَإِذَا اشْتَرَى الْبَاقِيَ قَبْلَ رَدِّ الْآمِرِ الْبَيْعَ نو هرکله چې وکيل پاته غلام د مؤکل د بيع رد کاوه نه وړاندې واخستلو. تَبَيَّنَ أَنَّهُ وَقَعَ وَسِيلَةً نو ښکاره شوه.چه نيم غلام خرڅول، ذريعه واقع شوې وه. فَيَنْفُذُ عَلَى الْآمِرِ نو په وکيل به دا بيع نافذ وي. وَهَذَا بِالِاتِّفَاقِ. اودا حکم بالاتفاق دې. |
|---|

**صورته**۞ يوسړې څوك د غلام اخستلو وکيل کړو.نو وکيل نيم غلام واخستلو .نودا اخستل به بالاتفاق
موقوف وي.يعنی که وکيل د غلام پاته برخه هم واخستله.نودا اخستل به مؤکل باندې لازم او نافذ وي.اوکه
د غلام پاته برخه ني وانخستله.نودا اخستل به مؤکل باندې لازم نه وي.

**دليله**۞ دليل دادې.چه د غلام د يوې برخې (حصې) اخستل کله کله د مؤکل د حکم پوره کاوه ذريعه واقع
کيږي. مثلاً يو غلام يوڅو کسانو ته په ميراث کي ملاؤ شوې وي.نودا يو څو سړي به ددې غلام مالکان
وي.اوس که وکيل دا غلام اخستل غواړي.نو وکيل به دا برخه حصه کوي.او د ټولو مالکانو څخه به ني
اخلي.بهرحال هرکله چې د مؤکل د نيم غلام بيع رد کاوه نه وړاندې د غلام پاته برخه هم واخستله. نو
ښکاره شوه.چه د نصف اول اخستل د مؤکل د حکم پوره کاوه.ذريعه واقع شوې وه.او وړاندې تير شوی
دی.چه په کوم صورت کي د نيم غلام بيع د مؤکل د حکم پوره کاوه ذريعه واقع کيږي.په هغه صورت کي د
بيع نفاذ مؤکل باندې کيږي.نود اخستلو په صورت کي هم هرکله چې د نصف اول اخستل د مؤکل د حکم
پوره کاوه ذريعه واقع شوه.نودا شراء به مؤکل باندې نافذ وي.ځکه دا داسې شوه.ګويا وکيل پوره غلام
اخستې دې.

**صورة الاتفاق بين الائمة**۞ مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د نصف اول شراء موقوف کيدلو باندې امام صاحب
او صاحبين رحمهم الله درې واړه متفق دی.خود امام صاحب رحمه الله په قول باندې دا اعتراض کيږي.چه امام صاحب
رحمه الله د بيع په پورتنۍ مسئله کي د نصف غلام بيع د توقف نه بغير جائز ګرځولې ده.او دلته په مسئله د شراء

كې نې د نصف غلا شراء موقف ګرځولې ده.

وَالْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله اود امام ابوحنيفه رحمه الله د قول په بنا (بنياد) باندې توپير دادې. أَنَّ فِي الشِّرَاءِ تَتَحَقَّقُ التُّهْمَةُ چې د شراء په صورت كې تهمت متحقق كيږي. عَلَى مَا مَرَّ. لكه چې تير شوى دى.

**وجه الفرق الاولى** ◉ اوددې دواړو په منځ كې وجه د توپير څه ده؟ مرغيناني رحمه الله ددې دوې (دوه) امله بيان كړي دي.رومبۍ وجه د توپير داده.چه په مسئله د شراء كې د وكيل په حق كې تهمت متحقق دې.په دې طريقه چې وكيل نصف غلام خپل خان لپاره اخستې وي.خوكله چې په دې كې څه تاوان محسوس شوې وي.نودا اخستل ئې د موكل په ذمه وراچولې وي.نو ددې تهمت په وجه د نصف غلام اخستل موقوف اوساتلې شو.او ونيلې شوى دى.كه وكيل پاته غلام هم واخستلو.نودا اخستل به موكل باندې نافذ وى.اوكه وانئخستلو نو نه به نافذ كيږي.خو په مسئله د بيع كې دا تهمت متحقق نه دې.په دې وجه د نصف غلام بيع موكل لپاره كيداې شي.وكيل لپاره نشى كيدې.نو ددې توپير په وجه د بيع په مسئله كې د نصف غلام بيع دځه توقف نه بغير جائز ګرځولې شوې ده.او په مسئله د شراء كې د نصف غلام شراء موقوف ساتلې شوې ده.

وَآخَرُ او دوهم فرق دادې. أَنَّ الْأَمْرَ بِالْبَيْعِ يُصَادِفُ مِلْكَهُ چې امر بالبيع د موكل حكم راګيروى. فَيَصِحُّ نو صحيح به وى. فَيُعْتَبَرُ فِيهِ إِطْلَاقُهُ او په دې كې به حكم مطلق كيدل معتبر وى. وَالْأَمْرُ بِالشِّرَاءِ صَادَفَ مِلْكَ الْغَيْرِ او امر بالشراء د غيرملك موندلې دې. فَلَمْ يَصِحَّ نودا حكم به صحيح نه وى. فَلَا يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّقْيِيدُ وَالْإِطْلَاقُ. او په دې كې به تقييد او اطلاق معتبر نه وى

**وجه الفرق ا لثانية** ◉ په دې عبارت سره دويمه وجه د توپير بيانوى چې د وكيل بالبيع په صورت كې د موكل امر بالبيع د موكل ملك سره ملاويږي.يعنى موكل د خپل مملوكه شئ خرڅولو حكم وركړې دې.او موكل ته پخپله ملك باندې ولايت حاصل وى.ځكه به دده امربالبيع صحيح وى.او هركله چې د موكل امربالبيع صحيح دې.نو په دې كې به اطلاق امر معتبر وى.اوهركله چې د موكل په امربالبيع كې اطلاق معتبر دې.نو وكيل له به د پوره غلام خرڅول هم جائز وى.او د نيم غلام خرڅولو به هم جائز وى.نو دده نيم غلام خرڅول به هم جائز وى.او د توكيل بالشراء په صورت كې د موكل امر غير ملك سره ملاويږي.يعنى موكل چې د كوم شئ اخستل حكم كړې دې.هغه شئ د موكل ملك نه دې.بلكه د بائع ملك دې.اود غيرملك خرڅولو حكم كول صحيح نه دې.صرف د اړتيا په لحاظ سره جائز ګرځولې شوې دې.نوهركله چې امر بالشراء صحيح نه دې.نو په دې كې به اطلاق يا تقييد معتبر نه وى.بلكه عرف به معتبر وى.او عرف دادې.چه پوره غلام واخستلې شي.نود غلام اخستلو حكم كول به د عرف په لحاظ د پوره غلام خرڅولو حكم كول وى.او هركله چې داسې ده.نو وكيل چې په كوم صورت كې پوره غلام اخلى. (كه په يوځل وى.اوكه په برخه حصه وى ) په دې صورت كې دا اخستل د موكل د حكم مطابق دى.ځكه به په موكل باندې لازم وى.او په كوم صورت كې چې نيم غلام اخلى.په هغه صورت كې د موكل د حكم موافقت نه كيدلو په وجه به په موكل باندې لازم نه وى.بلكه په وكيل به لازم وى.

### د عيب په وجه وكيل ته دواپس شوى غلام موكل ته د واپس كولو حكم

قَالَ (وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِبَيْعِ عَبْدِهِ) اوكه يوكس يو سړى ته د خپل غلام خرڅولو حكم اوكړو (فَبَاعَهُ) نو وكيل هغه خرڅ كړو. (وَقَبَضَ الثَّمَنَ) د په ثمن نې قبضه اوكړله. (أَوْ لَمْ يَقْبِضْ) يا نې اونكړله. (فَرَدَّهُ الْمُشْتَرِي عَلَيْهِ بِعَيْبٍ لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ بِقَضَاءِ الْقَاضِي) يا دا غلام مشترى وكيل ته د قاضى په قضاء سره واپس كړو. د داسې عيب په وجه چې د هغې مثل نشى پيدا كيدې. (بِبَيِّنَةٍ) (د قاضى دا فيصله) د بينه په وجه وى. (أَوْ بِإِبَاءِ يَمِينٍ) يا د قسم نه د انكار په وجه وى. (أَوْ بِإِقْرَارٍ) يا د وكيل د اقرار په وجه وى (فَإِنَّهُ يَرُدُّهُ عَلَى الْآمِرِ) نو وكيل دا غلام موكل ارخ ته واپس



كولې شي. لِأَنَّ الْقَاضِيَ تَيَقَّنَ بِحُدُوثِ الْعَيْبِ فِي يَدِ الْبَائِعِ ځكه چې قاضى ته د بائع په قبضه كې د عيب پيدا كيدلو يقين دې. فَلَمْ يَكُنْ قَضَاؤُهُ مُسْتَنِدًا إِلَى هَذِهِ الْحُجَجِ. نود قاضى دا فيصله به دې حجتونو ارخ ته منسوب نه وى.

**صورة المسئلة** ◉ چه يوسړى بل كس د خپل غلام خرڅولو وكيل كړو.نو وكيل دا غلام خرڅ كړو.او مشترى ته نې حواله كړو.وكيل په ثمن باندې قبضه كړې وى.او كه نه وى كړې.دواړو صورتونوكې كه مشترى غلام وكيل ارخ ته دداسې عيب په وجه واپس كړو.د كوم عيب مثل چې د مشترى په قبضه كې نشى پيدا كيدې.مثلاً د غلام په لاس كې د زياتى ګوتې كيدل،يا نې دداسې عيب په وجه واپس كړو.چه د هغې مثل په دومره موده كې نشى پيدا كيدې.كومه موده چې د مشترى د قبضې ده.او: مشترى دا معيب غلام واپس كول، د قاضى په حكم سره وى.اود قاضى داحكم د مشترى د پيش كړې شوى بينه په وجه وى.يا د بينه نه پيش كاوه په صورت كې د وكيل د قسم نه د انكار په وجه وى.يا د بينه نه پيش كاوه په صورت كې د وكيل د قسم خوړلو نه د انكار په وجه وى.يا د وكيل په عيب باندې د اقرار په وجه وى.په درې واړه صورتونوكې وكيل دا معيب غلام د خصومت نه بغير موكل ارخ ته واپس كولې شى.يعنى وكيل به ددې معيب غلام موكل ارخ ته واپس كاوه لپاره د خصومت او د قاضى د قضاء محتاج نه وى.ځكه چې د قاضى د قضاء په وجه وكيل ارخ ته د مشترى غلام واپس كول هم دا موكل ارخ ته واپس كول دى.موكل ارخ ته واپس كاوه لپاره د جلا خصومت او جګړې اړتيا نشته.

**دليله** ◉ ددې دليل دادې.چه كلام چونكه د هغه عيب په اړه كې دې.د كوم مثل چې نشى پيدا كيدې.په دې وجه قاضى ته بنه پوره يقين دې.چه دا عيب د بائع په قبضه كې موجود وو.او هركله چې قاضى ته د بائع په قبضه كې د مذكوره عيب كيدلو يقين دې.نو قاضى د خپل علم او يقين په رڼا كې دا معيب غلام بائع ارخ ته د واپس كاوه فيصله كولې شى.او ددې فيصلې لاندې د غلام واپسى لكه څنګه چې وكيل ارخ ته كيږي.دغه ډول به موكل ارخ ته هم كيږي.

**الاعتراض** ◉ كه څوك دا اعتراض اوكړي.چه هركله عيب داسې دې.چه د هغې مثل د مشترى په قبضه كې نشى پيدا كيدې.نو بيا د قاضى فيصله مذكوره حجتونو يعنى بينه وغيره باندې ولې موقوف ساتلې شوې ده.قاضى د خپل علم او يقين په وجه د حجتونو نه بغير هم فيصله صادر كولې شى ؟

**الجواب** ◉ مرغيناني رحمه الله ددې په ځواب كې فرماني. «فلم يكن قضاءه مستنداً إلى هذه الحجج.....الخ» يعنى د قاضى عيب دار غلام واپس كاوه فيصله په دې حجتونو باندې موقوف نه ده.دلته په عبارت كې كه د، ،فلم يكن،، په ځاې، ،ولم يكن،، يعنى د فاء په ځاې واؤ وو.نو عبارت به نورهم واضح وو.

**الاعتراض** ◉ اوس دا سوال پيدا كيږي.چه هركله قاضى ته ددې خبرې يقين دې.چه داعيب د بائع په قبضه كې وو.اود مشترى په قبضه كې نه دې پيدا شوې.اود قاضى فيصله په مذكوره حجتونو باندې موقوف نه ده.نو په متن كې ( جامع صغير) كې ددې حجتونو ذكر كولو، او ددې د شرط لګولو نه څه فائده ده؟

وَتَأْوِيلُ اشْتِرَاطِهَا فِي الْكِتَابِ او په كتاب كې ددې حجتونو د شرط كيدلو تاويل دادې. أَنَّ الْقَاضِيَ يَعْلَمُ چې قاضى ته علم دې.. أَنَّهُ لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ فِي مُدَّةِ شَهْرٍ مَثَلًا چې دداسې قسمه عيب مثلاً په يوه مياشت كې نشى پيدا كيدلې. لَكِنَّهُ اشْتَبَهَ عَلَيْهِ تَارِيخُ الْبَيْعِ خو په قاضى باندې د بيع تاريخ مشتبه شو. فَيَحْتَاجُ إِلَى هَذِهِ الْحُجَجِ لِظُهُورِ التَّارِيخِ، نو دغه تاريخ به د ښكاره كيدلو په وجه دې حجتونو ارخ ته محتاج وى. أَوْ كَانَ عَيْبًا يا داسې عيب وو. لَا يَعْرِفُهُ إِلَّا النِّسَاءُ أَوِ الْأَطِبَّاءُ، كوم چې صرف ښځې او طبيب ( ډاكټر) پيژنى. وَقَوْلُهُنَّ وَقَوْلُ الطَّبِيبِ حُجَّةٌ فِي تَوَجُّهِ الْخُصُومَةِ اود ښځو او د طبيب قول د جګړې په متوجه كيدلو كې حجت دې. لَا فِي الرَّدِّ او بائع ارخ ته واپس كولوكې حجت نه دې. فَيَفْتَقِرُ إِلَيْهَا فِي الرَّدِّ، نوهغې ته به په رد كاوه كې محتاج وى حَتَّى لَوْ كَانَ الْقَاضِي عَايَنَ الْبَيْعَ تردې كه قاضى د بيع مشاهده اوكړله. وَالْعَيْبُ ظَاهِرٌ او عيب ښكاره وى. لَا يَحْتَاجُ إِلَى شَيْءٍ مِنْهَا نو قاضى به په

دې کې هیڅ حجت ته محتاج نه وي. **وَهُوَرَدٌعَلَى الْمُوَكِّلِ** اوهم دا په موکل باندې واپسی ده. **فَلَايَحْتَاجُ الْوَكِيلُ إِلَى رَدِّهِ وَخُصُومَتِهِ** نو وکیل به د واپس کاوه اود خصومت کاوه محتاج نه وي

**الجوابان**⊛ ① قاضی ته داخبره معلومه ده.چه داسې قسمه عیب مثلاً دیو میاشت په موده کې نشی پیدا کیدې.خو په قاضی باندې د بیع تاریخ مشتبه شو.چه بیع کله منعقد شوې وه.ځکه که بیع دوې (دوه) څلور میاشتې وړاندې منعقد شوې وي.نودا عیب کیداې شی.چه د مشتری په قبضه کې پیدا شوې وي. او ددې عیب په وجه به مشتری لپاره غلام واپس کول جائز نه وي.اوکه د بیع منعقد کیدلو یوه میاشت موده هم نه وي تیره شوې.نودا عیب به د بائع په قبضه کې پیدا شوې وي.او مشتری لپاره به ددې عیب په وجه غلام واپس کول جائز وي.نو مشتری به د بیع تاریخ متعین کاوه لپاره ذکرشوی درې حجتونوکې یو حجت ته محتاج وي.یعنی یا به مشتری په دې خبره بینه پیش کوی.چه د بیع په انعقاد باندې زیاته موده نه ده تیره شوې.نودا عیب د بائع په قبضه کې پیدا شوې دې.او یا به بائع د قسم خوړلو نه انکار کوی.او یا به بائع ( وکیل) ددې عیب اقرار کوی.نو چونکه د بیع تاریخ ښکاره کاوه لپاره ددې حجتونو اړتیا راپیښیږی.په دې وجه جامع صغیر کې ددې حجتونو شرط کیدل ذکر کړې شوی دی. ② بعض مرتبه هغه عیب د کوم په وجه چې مشتری د مبیع واپس کاوه اراده کوی.داسې وي.چه دا صرف ښځې پیژنی.مثلاً مبیع وینځه وي.او ددې په شرمگاه کې څه ناروغی (ناروغی (بیماری)) وي.یا داسې عیب وي.چه هغه صرف طبیبان خلگ پیژنی.مثلاً زوړ ټوخې( پوخلې) او د ښځو او طبیبانو قول په دې اړه کې حجعت کیداې شی.چه مشتری بائع سره خصومت او جګړه اوکړی.خود ښځو اود طبیب د قول په وجه مبیع بائع اړخ ته نشی واپس کیدلې.نو د مبیع واپس کاوه لپاره به د مذکوره حجتونو اړتیا راپیښیږی.په دې وجه جامع صغیر کې مذکوره حجتونه شرط کیدل ذکر شوی دی.خو که قاضی د بیع مشاهده کړې وي.یعنی د بیع انعقاد د هغه په وړاندې شوې وي.او ده ته د هغې تاریخ هم معلوم وي.او عیب بالکل ښکاره دې.نو په دې صورت کې به قاضی په ذکرشوی حجتونوکې هیڅ حاجت ته محتاج نه وي.بلکه د څه حجت بغیر غلام واپس کولې شی.او فیصله صادرکولې شی.او د قاضی ددې فیصلې په وجه د مشتری وکیل اړخ ته غلام واپس کول به موکل اړخ ته هم واپس کول وي.یعنی وکیل به خپل موکل سره د څه خصومت محتاج نه وي.بلکه وکیل اړخ ته غلام واپس کاوه سره به موکل اړخ ته غلام واپس کیږی.

**الاعتراض**⊛ که څوك دا ووایې چې هرکله وکیل د عیب اقرار اوکړو.نو په دې صورت کې د قاضی د قضاء څه اړتیا دې.د اقرار کاوه په وجه به وکیل معیب غلام قبول کړی.حالانکه متن کې اقرار سره هم د قاضی دقضاء ذکر دې.یعنی د اقرار په صورت کې هم د قاضی فیصله ضروری ده.

**الجواب**⊛ ددې ځواب دادې.چه داسې کیداې شی.چه وکیل د عیب اقرار اوکړی.خو ددې نه روسته هغه د معیب غلام قبلولو نه منع شی.نو په دې صورت کې د قاضی فیصله به هغه په قبلولو باندې مجبوره کوی یعنی په دې صورت کې وکیل په قبلولو باندې مجبوره کاوه لپاره به د قاضی د قضاء اړتیا راپیښیږی.

## د کوم عیب چې مثل پیدا کیدې شي د هغې حکم

قَالَ **(وَكَذٰلِكَ إِنْ رَدَّهُ عَلَيْهِ** اوهم دغه ډول که مشتری غلام وکیل ته واپس کړو **بِعَيْبٍ يَحْدُثُ مِثْلُهُ** په داسې عیب سره چې دهغې مثل پیدا کیداې شی. **بِبَيِّنَةٍ** بینه په وجه، **أَوْبِإِبَاءِ يَمِينٍ)** اویا د قسم نه د انکار په وجه، **لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ حُجَّةٌ مُطْلَقَةٌ**،ځکه چې بینه حجت کامله دې. **وَالْوَكِيلُ مُضْطَرٌّفِي النُّكُولِ** او وکیل د قسم نه په انکار کولوکې مجبور دې **لِبُعْدِ الْعَيْبِ عَنْ عِلْمِهِ بِاعْتِبَارِ عَدَمِ مُمَارَسَتِهِ الْمَبِيعَ**،ځکه چې مبیع سره د عدم تعلق په وجه وکیل د عیب علم نه لرې دې. **فَلَزِمَ الْآمِرَ** نو غلام به موکل باندې لازم وي

**صورة المسئلة**⊛ که مشتری وکیل اړخ ته غلام دداسې عیب په وجه واپس کړو.چه دهغې مثل پیدا کیداې



شی.اود غلام واپس کاوه فیصله د بینه په وجه شوې وي.یا د وکیل د قسم نه د انکار په وجه شوې وي.دواړو صورتونوکې به هم دا واپسی موکل اړخ ته واپس کول وي.موکل اړخ ته واپس کاوه لپاره به وکیل د خصومت محتاج نه وي.

**دلیله**⊛ که مشتری په دې خبره بینه قائم کړل.چه دا بیع د بائع د قبضې په وخت هم موجود وو.او قاضی ددې بینه په وجه د غلام واپس کاوه حکم اوکړو.نودا واپس کول به په موکل وي.ځکه چې بینه حجت کامله وي.نود بینه په وجه د عیب قیام موکل سره ثابتیږی.او هرکله چې د عیب قیام موکل سره ثابت شو.نود غلام واپس کول به هم موکل اړخ ته وي.

**وجه انکارالوکیل عن الیمین**⊛اود وکیل د انکار عن الیمین په صورت کې واپس موکل اړخ ته ځکه کیږی.چه وکیل د قسم نه په انکار کوه مجبوره دې.او مجبور ځکه دې.چه دې وکیل ته د مبیع یعنی د غلام د حالاتو سره زیات تعلق نه پاتې شوې.نو دهغه د عیبونو څخه به هم زیات خبر نه وي.او هرکله چې وکیل د غلام دعیبونو نه زیات خبر نه دې.نو هغه به د دروغو قسم خوړلو نه یریږی.او ددې په نتیجه کې به هغه د قسم خوړلو نه انکار کوی.او وکیل په دې مصیبت کې موکل اخته (لګیا)کړې دې.نو دده خلاصول به هم په موکل باندې واجب وي.یعنی په وکیل چې کومه ذمه داری راغې.هغه به موکل اړخ ته واپس کیږی.نود انکار عن الیمین حکم به موکل باندې لازمیږی.یعنی د انکار عن الیمین په وجه به د غلام واپسی موکل باندې وي.او وکیل لپاره په غلام واپس کاوه کې به موکل سره د خصومت کاوه هیڅ اړتیا نه وي.

## د وکیل په اقرار سره د غلام حکم

قَالَ **(فَإِنْ كَانَ ذٰلِكَ بِإِقْرَارِهِ** نوکه دا واپسی د وکیل په اقرار سره وي. **لَزِمَ الْمَأْمُورَ)** نو غلام به په وکیل باندې لازم وي

**صورة المسئلة**⊛ که وکیل د مبیع غلام دعیب اقرار اوکړو.او ددې اقرار په وجه د قاضی په فیصله سره مشتری معیب غلام وکیل اړخ ته واپس کړو.نودا غلام به د وکیل په ذمه لازم وي.یعنی د غلام دا واپسی به په وکیل باندې شمارلې کیږی.موکل باندې به نه شمارلې کیږی.

**لِأَنَّ الْإِقْرَارَحُجَّةٌ قَاصِرَةٌ**.ځکه چې اقرار حجت قاصره دې. **وَهُوَغَيْرُمُضْطَرٍّإِلَيْهِ** او وکیل په اقرار کاوه کې مجبور هم نه وو. **لِإِمْكَانِهِ السُّكُوتَ** ځکه چې هغه لپاره چوپ والې اختیارول، **وَالنُّكُولَ**،او دقسم نه انکارکول ممکن وو **إِلَّا أَنَّ لَهُ**.خو وکیل لپاره ددې حاجت دې. **أَنْ يُخَاصِمَ الْمُوَكِّلَ** چې موکل سره مخاصمه اوکړی. **فَيُلْزِمَهُ بِبَيِّنَةٍ أَوْبِنُكُولِهِ**،بیا غلام د بینه په ذریعه، یا دده د انکار عن الیمین په ذریعه هغه باندې لازم کړی

**دلیله**⊛ اقرار حجت قاصره دې.نو ددې اثر به د اقرار کونکی په حق کې ښکاره کیږی.او دده نه علاوه د بل چا په حق کې به نه ښکاره کیږی.یعنی د اقرار کاوه په وجه به د غلام واپسی مقر( وکیل) اړخ ته کیږی.او موکل اړخ ته به نه کیږی.او وکیل اقرار کاوه لپاره مجبوره هم نه وو.ځکه چې دده لپاره خاموش پاتې کیدل هم ممکن وو.اود یمین د مطالبې په صورت کې یمین نه انکار کول هم ممکن وو.نوکه اقرار ئې نه ووکړې.بلکه خاموش پاتې شوې وې.یا د یمین د مطالبې په وخت د قسم خوړلو نه انکارکړې وې.نود سکوت یا د انکار عن الیمین په وجه به فیصله کولې شوه.اود اقرار په وجه به فیصله نه کیدله.بهرحال وکیل د عیب په اقرار کاوه کې مجبور نه وو.بلکه مختار وو.یعنی د معیب غلام واپسی به هم ده اړخ ته کیږی.او دده اقرار به په موکل باندې نشی ورتپلې.یعنی دا واپسی به موکل باندې نه لازمیږی.البته وکیل ته به خپل موکل سره د خصومت کاوه پوره پوره اختیار وي.یعنی د قاضی په عدالت کې د دعوې پیش کاوه نه روسته به وکیل په دې خبره بینه پیش کوی.چه د غلام دا عیب موکل سره هم موجود وو.که وکیل بینه پیش کړل.نودا غلام به موکل باندې لازم وي.یعنی وکیل به دا غلام موکل اړخ ته واپس کوی.او که وکیل بینه پیش نکړې شو.نود موکل څخه به قسم اخستلې شی.که موکل د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو بیا به

هم غلام موکل ارخ ته واپس کولي شي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الرَّدُّ بِغَيْرِ قَضَاءٍ بِإِقْرَارٍ په خلاف د هغه د صورت کله چې واپس کول د وکيل په اقرار سره د قضاء نه بغير وي. وَالْعَيْبُ يَحْدُثُ مِثْلُهُ او عيب داسې وي چه د هغې مثل پيدا کيداې شي حَيْثُ لَا يَكُونُ لَهُ په دې طريقه چې وکيل ته به حق نه وي. أَنْ يُخَاصِمَ بَائِعَهُ، چې ددې غلام په سلسله کې خپل موکل سره څه خصومت اوکړي. لِأَنَّهُ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ خکه چې دا د دريم په حق کې بيع جديد ده. وَالْبَائِعُ ثَالِثُهُمَا، او بائع ددوی دريم دی. وَالرَّدُّ بِالْقَضَاءِ فَسْخٌ او د قاضي دقضاء په وجه واپسی فسخ ( د عقد ) ده. لِعُمُومِ وِلَايَةِ الْقَاضِي نو قاضي د عموم ولايت په وجه غَيْرَ أَنَّ الْحُجَّةَ قَاصِرَةٌ وَهِيَ الْإِقْرَارُ، خوداچه حجت قاصره يعنی اقرار، فَمِنْ حَيْثُ الْفَسْخُ كَانَ لَهُ نود فسخ کاوه په وجه وکيل لپاره جائز دی أَنْ يُخَاصِمَهُ، چه هغه موکل سره مخاصمه اوکړي. وَمِنْ حَيْثُ الْقُصُورُ فِي الحجة او د وجهې دقصور نه په حجت کې لَا يَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ إِلَّا بِحُجَّةٍ نه لازميږی د موکل لپاره مګر په حجت سره

ددې په خلاف که وکيل د عيب اقرار اوکړو اود قاضی د قضاء نه بغير صرف د وکيل د اقرار کاوه په وجه غلام وکيل ارخ ته واپس کړې شو او عيب داسې دې چه د هغې مثل پيدا کيداې شي،نو په دې صورت کې به وکيل ته د خپل بائع يعنی موکل سره د مخاصمه کاوه اختيار هم نه وي.خکه چې د قاضی د قضاء نه بغير صرف د وکيل د اقرار په وجه وکيل ارخ ته د غلام واپسی ، د وکيل او مشتری په حق کې اګرچه فسخ د بيع ده.خود دريم په حق کې بيع جديد ده.يعنی د موکل په حق کې داسې ده.ګويا مشتری دا غلام وکيل باندې خرخ کړې دې،نو وکيل ته به خپل موکل سره ددې غلام په سلسله کې د خصومت هيڅ حق نه وی.اود قاضی د قضاء په وجه معيب غلام وکيل ارخ ته واپس کول فسخ د بيع ده.خکه چې قاضی ته ولايت عامه حاصل دې.خودا فسخ د حجت قاصره يعنی د اقرار په وجه ده.نود حجت قاصر کيدلو په وجه معين غلام وکيل ارخ ته واپس کول به موکل ارخ ته واپس کول نه وی.يعنی وکيل ارخ ته د واپس کاوه سره به دا غلام موکل ارخ ته نه واپس کيږی.البته که وکيل بينه پيش کړی.يا موکل د قسم نه انکار اوکړی.( نو موکل ارخ ته به واپس کولې شی ) ،اودا واپسی فسخ د بيع ده. په دې وجه به وکيل ته خپل موکل سره د خصومت پوره پوره حق وی.خکه چې د بيع د فسخ په صورت کې وکيل لپاره خپل موکل سره خصومت کول جائز دی.

وَلَوْ كَانَ الْعَيْبُ او که عيب داسې دې لَا يَحْدُثُ مِثْلُهُ چه ددې مثل نشی پيدا کيدې. وَالرَّدُّ بِغَيْرِ قَضَاءٍ بِإِقْرَارِهِ او د غلام واپس کول دده په اقرار دقاضی د قضاء نه بغير شوې وی يَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ مِنْ غَيْرِ خُصُومَةٍ فِي رِوَايَةٍ نو په يو روايت کې د خصومت نه بغير موکل باندې لازميږی خکه لِأَنَّ الرَّدَّ مُتَعَيَّنٌ خکه چې واپس کول متعين دی.

او که په غلام کې داسې عيب اوموندې شو چه دهغې مثل نشی پيدا کيدې.او مشتری غلام وکيل ارخ ته صرف دده په اقرار سره د قاضی د قضاء نه بغير واپس کړو.نود مبسوط د کتاب البيوع د يو روايت مطابق به دا واپسی د خصومت نه بغير موکل باندې لازم وی.يعنی د مشتری معيب غلام وکيل ارخ ته واپس کاوه سره موکل ارخ ته واپس کيږی.او ددې لپاره وکيل ته د خصومت وغيره هيڅ ارتيا هم نه راپيښيږی.خکه چې هرکله عيب داسې دې چه دهغې مثل د مشتری په قبضه کې نشی پيدا کيدې.نو ددې عيب په وجه غلام واپس کول متعين دی.يعنی وکيل او مشتری دواړو بعينه هم هغه کار اوکړو.کوم به چې قاضی کولو.يعنی وکيل او مشتری د قاضی په عدالت کې دداسې عيب په اړه کې مرافعه کړې وه.( او مقدمه ئې پيش کړې وه)،چه د هغې مثل عيب نشی پيدا کيدې.نو قاضی به دا غلام وکيل ارخ ته واپس کولو.اوهم ددې فيصلې لاندې به موکل ارخ ته واپس کيدلو وکيل ته به د خصومت زحمت (اوتکليف) نه راپيښيدلو.بهرحال هرکله چې وکيل او مشتری هم هغه کار کړې دې.کوم به چې قاضی کولو.نو لکه څنګه چې د قاضی وکيل ارخ ته غلام واپس کاوه سره موکل ارخ ته واپس کيږی.دغه ډول د قضاء نه بغير صرف د وکيل په اقرار سره وکيل ارخ ته د غلام واپس کاوه سره موکل ارخ ته هم واپس کيږی.موکل ارخ ته واپس کاوه لپاره به وکيل د



خصومت محتاج نه وی.

وَفِي عَامَّةِ الرِّوَايَاتِ او په عامو رواياتو کې دی. لَيْسَ لَهُ أَنْ يُخَاصِمَهُ چې وکيل ته موکل سره د مخاصمې حق نشته. لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړې دې. وَالْحَقُّ فِي وَصْفِ السَّلَامَةِ او حق په وصف سلامت کې دی. ثُمَّ يَنْتَقِلُ إِلَى الرَّدِّ بيا به واپس کاوه ارخ ته منتقل کيږی. ثُمَّ إِلَى الرُّجُوعِ بِالنُّقْصَانِ بيا به رجوع بالنقصان ارخ ته منتقل کيږی فَلَمْ يَتَعَيَّنِ الرَّدُّ، نو واپسی نه متعين کيږی. وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْكِفَايَةِ بِأَطْوَلَ مِنْ هٰذَا او موږ په کفايه کې ددې نه په زيات تفصيل سره ذکر کړې دی.

اود مبسوط په عامو رواياتو کې دی.چه په دې صورت کې به غلام صرف وکيل ارخ ته واپس کيږی.او موکل ارخ ته به نه واپس کيږی.او وکيل ته به د خپل موکل سره د مخاصمه کاوه هم حق نه وی.يعنی دا واپسی به په وکيل باندې لازم وی.او هم وکيل به مشتری ته ثمن واپس کوی.او هم وکيل به ددې غلام مالک وی.او وکيل ته به دا حق هم نه وی.چه هغه خپل موکل ارخ ته د غلام واپس کاوه لپاره عدالت کې خصومت پيش کړی.

ددې دليل وړاندې تيرشوې دې.چه د اقرار په وجه د قضاء نه بغير، غلام واپس کول د وکيل او مشتری په حق کې اګرچه فسخ د بيع ده.خو ددوی نه د علاوه په حق کې بيع جديد ده.او موکل ددوی دواړو نه غير دې،نو ددوی دواړو په منخ کې منعقده بيع ددوی نه غير يعنی په موکل به ولې لازميږی ؟ يعنی په موکل به دا غلام نه لازميږی.

مرغينانی ﷫ د «لأن الرد متعين» په څواب کې فرمائې.چه ستاسو دا وئيل ( چې د غلام ردکول او واپس کول متعين دی ) غلط دی.خکه چې د مشتری حق اولاً په وصف د سلامتيا کې ثابتيږی.يعنی مشتری د صحيح سالم مبيع مستحق وی.خو کله چې مبيع صحيح سالم نه وی.بلکه په دې کې عيب وی.نودهغه حق د مبيع واپس کاوه ارخ ته منتقل کيږی.يعنی مشتری لپاره د مبيع واپس کاوه حق ثابتيږی.خوکه د تيرشوی عيب نه علاوه په مبيع کې مشتری سره څه نوې عيب هم پيدا شو.يا په تيرشوی عيب کې اضافه اوشوه.نو په دې صورت کې مشتری لپاره د مبيع واپس کاوه حق نه وی.بلکه مشتری د خپل نقصان په اندازه ثمن واپس اخستلې شی.يعنی کوم عيب چې بائع سره پيدا شوې وو.د هغې په وجه چې د غلام په قيمت کې کومه کمی واقع شوه.مشتری لپاره دغه مقدار د بائع نه واپس اخستل جائز دی.بهرحال دا خبره ثابته شوه.چه دعيب په وجه د مبيع واپس کول متعين نه دی.او هرکله چې واپس کول متعين نه دی.نو ستاسو بيان کړې شوې دليل «لأن الرد متعين» به هم صحيح نه وی.

### د وکيل او موکل په مينځ کښې د غلام په نقد او پور خرخولو کښې اختلاف

قَالَ (وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ) که يوسړی بل کس ته اووئيل.چه ما تاته حکم کړې وو أَمَرْتُكَ بِبَيْعِ عَبْدِي بِنَقْدٍ،چه زما غلام د نقد په عوض خرخ کړه. فَبِعْتَهُ بِنَسِيئَةٍ خو هغه تا د پور په عوض خرخ کړې دې. وَقَالَ الْمَأْمُورُ أَمَرْتَنِي بِبَيْعِهِ او وکيل اووئيل.چه تا ما ته ددې د خرخولو حکم راکړې وو. وَلَمْ تَقُلْ شَيْئًا او نور دې هيڅ نه وو وئيلي

اعتبارقول الموکل۞ که د وکيل او موکل په منخ کې اختلاف وی.او موکل اووئيل.چه ته ما د نقد په عوض د خرخولو وکيل جوړ کړې وې.خوتا غلام د پور په عوض خرخ کړې دې.او وکيل اووئيل.چه داسې نه ده.بلکه تا تصرف مطلق ساتلې وو.يعنی صرف د غلام خرخولو وکيل کړې دې ووم.او ددې نه دې زياتی هيڅ نه وو وئيلی.نه دې د نقد په عوض د خرخولو څه وئيلی وو.اونه دې د پور په عوض د خرخولو څه ذکر کړې وو.

فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْآمِرِ) نود موکل قول به معتبر وی. لِأَنَّ الْأَمْرَ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ خکه چې حکم هم د هغه د ارخ مستفاد دې. وَلَا دَلَالَةَ عَلَى الْإِطْلَاقِ او په اطلاق باندې هيڅ دلالت نشته.

دليله۞ نو په دې صورت کې به د موکل قول معتبر وی.خکه چې امر د موکل د ارخه مستفاد دې.او امر چې

د چا د اړخه مستفاد وي. هغه د خپل قول نه ښه خبر وي. نوهم دهغه قول به معتبر وي. او دلته کي د امربالبيع په مطلق کيدلو باندي چونکه هيڅ دليل او قرينه هم موجود نه ده. په دي وجه به امر بالبيع په طلاق باندي نشي محمول کولي.

**د مضارب او د رب المال د اختلاف حکم**

قَالَ (وَإِنِ اخْتَلَفَ فِي ذَلِكَ الْمُضَارِبُ وَرَبُّ الْمَالِ) اوکه په دي کي مضارب او رب المال اختلاف اوکړو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُضَارِبِ) نود مضارب قول به معتبر وي. لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْمُضَارَبَةِ الْعُمُومُ خکه چي په مضاربت کي عموم اصل وي. الا ترى أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ بِذِكْرِ لَفْظِ الْمُضَارَبَةِ آيا نه گوري. چه مضارب د مضاربت لفظ ذکر کاوه سره د تصرف مالك جوړيږي. فَقَامَتْ دَلَالَةُ الْإِطْلَاقِ، نو په اطلاق باندي دلالت قائم دي.

**اعتبارقول المضارب في المضاربة** ⊛ که د مضاربت مطلق ساتلو، او نقد سره مقيد کاوه کي رب المال او مضارب اختلاف اوکړو. مثلاً رب المال دعوه اوکړله. چه ما مضارب ته دا مال په دي شرط باندي ورکړي وو. چه دي دا نقد خرڅ کړي. او مضارب اووئيل. چه د نقد قيد نه وو. بلکه صرف د مضاربت لپاره دي راکړي وو. نو په دي صورت کي به د مضارب قول معتبر وي.

**دليله** ⊛ دليل دادي. چه د مضاربت امر اگرچه د رب المال د اړخه مستفاد دي. خود رب المال د دعوي خلاف اطلاق باندي يعني د مضاربت په مطلق کيدلو باندي قرينه او دليل موجود دي. او قرينه داده. چه په مضاربت کي اصل دادي. چه دا عام او مطلق وي. هم دا وجه ده. که رب المال دا اووئيل. چه ما دا مال مضاربت لپاره ورکړو. نو صرف په دومره وئيلو سره به مضاربت متحقق کيږي. او مضارب ته به د تصرف اختيار حاصل وي. نو مضارب کوم چي د اطلاق مدعى دي. د هغه قول به د اصل موافق وي. او دچا قول چي د اصل موافق وي. هغه ته په اصطلاح د فقه کي مدعى عليه وائي. نو مضارب به مدعى عليه وي. او رب المال به مدعى وي. او مسئله په دي صورت کي ده. کله چي مدعى سره بينه موجود وي. اود بينه نه موجود کيدلو په صورت کي چونکه د مدعى عليه قول معتبر وي. په دي وجه به دلته کي د مضارب (څوك چي مدعى دي) قول معتبر وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا ادَّعَى رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارَبَةَ فِي نَوْعٍ ددي په خلاف که رب المال د يو ډول د مضاربت دعوه اوکړله وَالْمُضَارِبُ فِي نَوْعٍ آخَرَ او مضارب د دوهم ډول (دعوه اوکړله). حَيْثُ يَكُونُ الْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ، نود رب المال قول به معتبر وي. لِأَنَّهُ سَقَطَ الْإِطْلَاقُ بِتَصَادُقِهِمَا خکه چي د دواړو په اتفاق سره په مضاربت کي اطلاق ساقط شوي دي فَنَزَلَ إِلَى الْوَكَالَةِ الْمَحْضَةِ نودا به وکالت محضه اړخ ته راکښته کولای شي

**صورة اعتبارقول رب المال** ⊛ ددي په خلاف که رب المال د کپړي يو نوع کي د مضاربت دعوه اوکړله. او مضارب د کپړي په دوهم ډول کي د مضاربت دعوه اوکړله. مثلاً رب المال اووئيل. چه ما د تارونو په کپړه کي مضاربت لپاره رقم درکړي وو. او مضارب اووئيل. چه تا د وړې په کپړه کي د مضاربت لپاره وئيلي وو. نو په دي صورت کي به د رب المال قول معتبر وي. خکه چي رب المال او مضارب دواړه په دي خبره متفق شوي دي. چه مضاربت مطلق نه دي. خکه چي په دوي دواړو کي هر يو په يو کي مضاربت د وکالت محضه په مرتبه کي راکښته کړي دي. يعني رب المال به موکل وي. او مضارب به وکيل وي. او وړاندي تير شوي دي. چه د موکل او وکيل په منځ کي د اختلاف په صورت کي د موکل قول معتبر وي. نو دلته کي به هم د رب المال کوم چي د موکل په مرتبه کي دي. د هغه قول به معتبر وي.

ثُمَّ مُطْلَقُ الْأَمْرِ بِالْبَيْعِ يَنْتَظِمُهُ نَقْدًا وَنَسِيئَةً بيا مطلق امر بالبيع، بيع نقد او بيع پور دواړو ته گډ دي. إِلَى أَيِّ أَجَلٍ كَانَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه په نيز ميعاد چي څه هم وي وَعِنْدَهُمَا يَتَقَيَّدُ بِأَجَلٍ مُتَعَارَفٍ اود صاحبينو په نيز به متعارف ميعاد سره مقيد وي وَالْوَجْهُ قَدْ تَقَدَّمَ او وجه وړاندي تيره شوي



ده. مرغيناني فرمائي. چه د وکالت په صورت کي مطلق امر بالبيع، بيع نقد او بيع د پور دواړو ته شامليږي. يعني که موکل څوك د يو شي خرڅولو وکيل جوړ کړي. او دا حکم مطلق اوساتي. يعني نه د نقد خرڅولو ذکر اوکړي. اونه د پور خرڅولو ذکر اوکړي. نو په دي صورت کي وکيل لپاره په نقد او پور دواړه طريقه باندي خرڅول جائز دي. د امام ابوحنيفه په نيز د پور په صورت کي ميعاد چي څه هم وي. که متعارف وي. او که غير متعارف وي. دواړه جائز دي. البته د صاحبينو په نيز به په پور کي د ميعاد متعارف قيد وي. يعني د صاحبينو په نيز د پور په صورت کي وکيل متعارف ميعاد باندي خرڅولي شي. نو که وکيل په غير متعارف ميعاد باندي خرڅ کړو. مثلاً د پنځوس کاله په پور باندي ئي خرڅ کړو. نود امام اعظم په نيز به جائز وي. خود صاحبينو په نيز به ناجائز وي.

قَالَ (وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِبَيْعِ عَبْدِهِ که يو کس بل سړي ته د غلام خرڅولو حکم اوکړو. فَبَاعَهُ نو وکيل دا غلام خرڅ کړو. وَأَخَذَ بِالثَّمَنِ رَهْنًا او د ثمن په عوض ئي رهن واخستلو. فَضَاعَ فِي يَدِهِ بيا مال رهن د وکيل په قبضه کي ضائع شو أَوْ أَخَذَ بِهِ كَفِيلًا يا وکيل ثمن لپاره کفيل واخستلو. فَتَوِيَ الْمَالُ عَلَيْهِ. بيا مال په ده باندي هلاك شو فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ). نو په وکيل به ضمان واجب نه وي. لِأَنَّ الْوَكِيلَ أَصِيلٌ فِي الْحُقُوقِ خکه چي په حقوق دبيع کي وکيل اصيل وي. وَقَبْضُ الثَّمَنِ مِنْهَا او ثمن باندي قبضه کول د حقوقو څخه دي وَالْكَفَالَةُ تَوَثُّقٌ بِهِ، او کفيل اخستل ثمن سره مضبوطي ده. وَالِارْتِهَانُ وَثِيقَةٌ لِجَانِبِ الِاسْتِيفَاءِ او رهن اخستل هم د وصولولو په اړخ کي وثيقه (اعتماد) ده فَيَمْلِكُهُمَا. نو وکيل به د دواړو مالك وي.

**عدم الضمان على وكيل المبيع** ⊛ صورت د مسئلي دادي. چه يوسړي بل څوك د خپل غلام خرڅولو وکيل جوړ کړو. نو وکيل دا غلام خرڅ کړو. اود ثمن په عوض وکيل د مشتري نه رهن واخستلو. او دا مال رهن د وکيل په قبضه کي هلاك شو. يا وکيل د مشتري نه په ثمن باندي وکيل واخستلو. خو په کفيل باندي مال هلاك شو. په دي طريقه چي کفيل اومکفول عنه (يعني مشتري) دواړه فقيران (او تنگدست) مړه شو. يا کفيل مړ شو. او مکفول عنه داسي غائب شو. چه د هغه د اوسيدوځائي معلوم نشو. يا کفيل مړشو. او مکفول عنه ژوندي دي. خو کله چي دا مقدمه د قاضي په عدالت کي پيش شوه. نو قاضي د امام مالك د مذهب مطابق په نفس کفاله سره د براءة د اصيل قائل دي. نو هغه د خپل مذهب او عقيدي مطابق د اصيل د براءت حکم اوکړو. نو په دي دري واړه صورتونو کي هغه مال هلاك شو. کوم چي په مشتري باندي د ثمن په طور واجب وو. يعني په دي دري واړه صورتونو کي د ثمن وصولول متعذر شو. بهرحال د رهن او کفالت دواړه صورتونو کي به وکيل باندي د موکل لپاره هيڅ ضمان واجب نه وي.

**دليله** ⊛ خکه چي وکيل په حقوق د عقد کي اصيل وي. يعني حقوق د عقد په اصل کي وکيل اړخ ته واپس کيږي. او ثمن باندي قبضه کول دا هم د عقد د حقوقوڅخه دي. اود ثمن وصولولو لپاره مشتري نه کفيل اخستل، او رهن اخستل د ثمن وصولو په اړخ کي د وثيقي او مضبوطي شي دي. يعني کفيل اخستل او رهن اخستل، دا دواړه د ثمن وصولولو حق مضبوطوي. نوهرکله چي ثمن وصولول د وکيل حق دي. نو کفيل اخستل، او رهن اخستل، کوم چي دا حق مؤکد کوي. هغه به هم د وکيل حقوق وي. او وکيل به ددي مالك وي. اوکه د وکيل د قبضي نه ثمن هلاك شوي وو. نو په وکيل به ددي ضمان واجب نه وو. خکه چي ثمن باندي د وکيل قبضه، قبضه د امانت وي. اود امانت د قبضي هلاکيدلو په وجه ضمان نه واجبيږي. نو په وکيل به د ثمن ضمان هم نه واجبيږي. نو رهن چونکه د ثمن بدل او د هغي قائم مقام دي. په دي وجه ددي د هلاکيدلو په وجه هم وکيل باندي ضمان نه واجبيږي. او د کفالي په صورت کي به هم وکيل باندي ضمان نه وي. خکه چي په دي صورت کي د ثمن هلاکيدل موجود شوي دي. اود ثمن هلاکيدلو په صورت کي وکيل باندي ضمان نه واجبيږي. نويه دي صورت کي به هم ضمان نه واجبيږي.

بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِقَبْضِ الدَّيْنِ په خلاف د پور وصولولو د وكيل. لِأَنَّهُ يَفْعَلُ نِيَابَةً ځكه چې هغه په نيابت كې كار كوي. وَقَدْ أَتَابَهُ فِي قَبْضِ الدَّيْنِ او موكل ده لره په قرضه باندې د قبضې وكيل كړي دي دُونَ الْكَفَالَةِ د كفالت قبلولو وكيل ني نه دي جوړ كړي. وَأَخْذِ الرَّهْنِ اود رهن اخستلو، وَالْوَكِيلُ بِالْبَيْعِ يَقْبِضُ أَصَالَةً او وكيل بالبيع اصالة قبضه كوي. وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ الْمُوَكِّلُ حَجْرَهُ عَنْهُ په دې وجه موكل ددې مالك نه دي. عنه چې وكيل په ثمن باندې د قبضه كاوه نه منع كړي.

**وجوب الضمان على وكيل قبض الدين**⊛ ددې په خلاف كه يوكس د خپلې پور وصولولو لپاره څوك وكيل كړو، او بيا وكيل د پور په عوض قرضدار نه رهن واخستلو، اود وكيل دا رهن اخستل، او كفيل اخستل به جائز نه وي. ځكه كه رهن د وكيل په قبضه كې هلاك شو، يا كفيل او مكفول عنه (قرضدار) دواړه فقيران شو، او مړه شو، نو وكيل به د ضمان نه نه برى كيږي. بلكه په وكيل به د پور ضمان واجب وي.

**دليله**⊛ ځكه چې د پور وصولولو وكيل د موكل نائب وي، او قرضه وصولوي. نو هغه ته به صرف د موكل د پور وصولولو اجازت وي. ځكه چې موكل هغه صرف د پور وصولولو نائب جوړ كړې دي. اود كفيل اخستلو، او رهن اخستلو ئې چونكه دې نائب او وكيل نه دي جوړ كړي. ځكه به هغه لپاره د قرضدار نه كفيل اخستل او رهن اخستل جائز نه وي. او وكيل بالبيع چونكه په حقوقو كې اصيل وي. په دې وجه هغه په ثمن باندې اصالةً قبضه كوي. نيابةً قبضه نه وي. هم دا وجه ده. چه موكل هغه په ثمن باندې د قبضې كاوه نه د منع كاوه اختيار نه لري. نو وكيل به په دې صورت كې د مالك په مرتبه كې وي. او مالك كه د ثمن عوض واخلي. يا د ثمن لپاره كفيل واخلي. نو جائز دي. نو وكيل بالبيع له هم رهن اخستل او كفيل اخستل جائز دي.

## د يو وكيل په غير موجودګۍ كښې د دوهم وكيل د تصرف حكم

(فصل) قَالَ (وَإِذَا وَكَّلَ وَكِيلَيْنِ) وهركله چې ده دوې (دوه) نفر وكيلان كړل فَلَيْسَ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ فِيمَا وُكِّلَا بِهِ دُونَ الْآخَرِ) نو په دوى كې يو لپاره د دوهم نه بغير دا اختيار نشته چه دې په هغه شئ كې تصرف اوكړي. دكوم چې دواړه وكيلان جوړ كړې شوى دى. وَهَذَا فِي تَصَرُّفٍ يُحْتَاجُ فِيهِ إِلَى الرَّأْيِ ځكه چې حكم په داسې تصرف كې دې. چه هغې كې د رائې ارتيا راپيښيږي. كَالْبَيْعِ وَالْخُلْعِ وَغَيْرِ ذَلِكَ. لكه بيع او خلع وغيره.

**عدم جواز تصرف احدالوكيل**⊛ صورت د مسئلې دادې. چه يوسړي دوې (دوه) سړي په يو كلام سره وكيلان كړل. مثلاً دائې اووئيل. چه دا دواړه د خپل غلام خرڅولو، يا خپلې ښځې سره د خلع وكيلان كړل. نو په دوى دواړو وكيلانو كې به يوكس ته د دوهم د رائې نه بغير په دې شئ كې د تصرف اختيار نه وي. په كوم شئ كې چې دواړه وكيلان جوړ كړې شوى دى. مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا حكم په داسې تصرف كې دې. په كوم كې چې رائې ته ارتيا راپيښيږي. لكه خلع، بيع وغيره. چه يو څو رائې سره اتفاق راشي. او مضبوطي حاصله شي.

لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ رَضِيَ بِرَأْيِهِمَا ځكه چې موكل ددوى دواړو په رائې باندې راضي شوې دي. لَا بِرَأْيِ أَحَدِهِمَا په دوى دواړو كې د يوكس په رائې نه دې راضي شوې

**دليله**⊛ هركله موكل دوې (دوه) سړي وكيلان كړل. نو ددې مطلب دادې. چه موكل ددوى دواړو په رائې باندې راضي شوې وو. صرف د يو په رائې باندې نه وو راضي شوې. او هركله چې موكل د دواړو په رائې باندې راضي شوې وو. نود يو وكيل په تصرف باندې به موكل راضي نه وي. او هركله چې موكل په دې باندې راضي نه دې. نو صرف يو وكيل ته به د تصرف اختيار نه وي. بلكه د دواړو رائې يوځائې كول به ضروري وي.

وَالْبَدَلُ وَإِنْ كَانَ مُقَدَّرًا او بدل اګرچه مقدر وي. وَلَكِنَّ التَّقْدِيرَ لَا يَمْنَعُ اسْتِعْمَالَ الرَّأْيِ فِي الزِّيَادَةِ وَاخْتِيَارِ الْمُشْتَرِي خو مقدر كول په زياتوالي او د مشترى په خوښوالي كې د رائې استعمالولو نه نه منع كوي.



**السوال التقديرى**⊛ په دې عبارت سره د يو سوال څواب دې. سوال دادې. چه عوض او بدل متعين شي مثلاً موكل د زر روپو په عوض د غلام خرڅولو وكيل كړو. يا د زر روپو په عوض د خلع كاوه ني وكيل جوكړو. نو په دې كې به د دواړو وكيلانو رائې ته هيڅ ارتيا نه وي. نوهركله چې په دې كې رائې ته ارتيا نشته. نو په دواړو وكيلانو كې هر يو ته د دوهم د تصرف نه بغير اجازت پكار نه دي. حالانكه تاسو وايئ. چه په دې صورت كې هم د دواړو رائې جمع كيدل ضروري دي ؟

**الجواب**⊛ ددې څواب دادې. چه د عوض متعين كيدلو په صورت كې اګرچه په متعين عوض كې كمى كول ممكن نه دي. خو زياتوالي كول ممكن دي. يعنې د عوض تعيين اګرچه د كموالي لپاره مانع دي. خود زياتوالي لپاره مانع نه دي. نود دواړو وكيلانو رائې جمع كيدلو سره ډير خله په ثمن كې اضافه كيداې شي. بهرحال ثابته شوه. چه په دې صورت كې هم ددواړو رائې جمع كيدل مفيد او ګټور دي. او مشترى هم كله كله چم باز وي. چه دده نه ثمن وصولول ډير مشكل وي. نو د داسې مشترى انتخاب كولوكې (كوم چې په ثمن اداكولوكې ټال مټول نه كوي) د رائې او مشورې ارتيا راپيښيږي. نو په دې سره به هم د دواړو وكيلانو د رائې ارتيا ثابتيږي. او هركله چې د دواړو وكيلانو د رائې ارتيا دې. نو صرف يو وكيل ته به د تصرف اختيار نه وي.

## د خصومت دوې (دوه) وكيلانو كښې د يو په غير موجودګۍ كښې د دوهم دد تصرف حكم

قَالَ (إِلَّا أَنْ يُوَكِّلَهُمَا بِالْخُصُومَةِ) خوكه دا دواړه د خصومت وكيلان كړي (نو تصرف كولې شي). لِأَنَّ الِاجْتِمَاعَ فِيهَا مُتَعَذِّرٌ ځكه چې په دې كې د دواړو جمع كيدل متعذر دي. لِلْإِفْضَاءِ إِلَى الشَّغَبِ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ ځكه چې دا به د قاضي په مجلس كې د شور، شغب سبب وي.

**صورة نفاذ تصرف احدالوكيلين في الخصومة**⊛ په دې ځائې كې ابو الحسين قدورى د هغه صورتونو بيان كوي په كومو كې چې يوكس دوې (دوه) سړي وكيلان جوړ كړې وي. نو په دوى كې يو وكيل ته د دوهم وكيل د رائې نه بغير د تصرف حق حاصل نه دې. خو يو څو صورتونه داسې دي. چه هلته كې د دوې (دوه) كسانو د وكيل جوړولو باوجود د يو كس تصرف جائز اوكافي دې. هغې كې يو صورت دادې. چه يوكس د قاضي په عدالت كې دمقدمه پيش كاوه لپاره دوې (دوه) سړي وكيلان كړل. خو په دوى كې يو وكيل د دوهم نه بغير مقدمه پيش كړله. نودا جائز ده.

**دليله**⊛ د مقدمه پيش كاوه په وخت دقاضي په مجلس كې د خلګو اجتماع معذر ده.[1] ځكه چې د ډيرو خلګو يوځائې كيدلو سره به شور، شغب وي. حالانكه د قاضي مجلس د شور شغب نه محفوظ ساتل ضروري دي. او د قاضي مجلس د شور شغب نه محفوظ ساتل ځكه ضروري دي. چه د مقدمه پيش كاوه نه مقصود حق ښكاره كول دي. اود شور شغب په وجه دا مقصود نه حاصليږي.[2] دويمه وجه داده. د شور، شغب په وجه د قاضي د مجلس هيبت ختميږي. حالانكه ددې پاته ساتل ضروري دي. نوهركله چې يوكس د مقدمه پيش كاوه لپاره دوې (دوه) سړي وكيلان كړل. حالانكه هغه ته معلومه ده. چه ددوى دواړو جمع كول متعذر دي. ګويا هغه په دوى كې د يوكس په مقدمه پيش كاوه باندې راضي شو. اوهركله چې موكل د يو په مقدمه پيش كاوه باندې راضي شو. نو په دوى كې صرف د يو وكيل د قاضي په عدالت كې مقدمه پيش كول به صحيح او جائز وي.

وَالرَّأْيُ يُحْتَاجُ إِلَيْهِ سَابِقًا اود رائې ارتيا ددې نه وړاندې دې. لِتَقْوِيمِ الْخُصُومَةِ چې مقدمه مضبوطي سره قائمه كړي.

**السوال التقديرى**⊛ په دې عبارت سره د امام زفر رحمه الله د قول ترديد كول مقصود دي. امام زفر رحمه الله فرمائي. چه صرف د يو وكيل مقدمه پيش كول صحيح او جائز نه دي. ځكه چې مقدمه مضبوطول او پيش كولوكې د رائې او مشورې ارتيا راپيښيږي. او موكل ددوى دواړو په رائې باندې راضي شوې دي. نو په دوى كې به صرف د يو په رائې باندې اكتفاء كول صحيح نه وي. بلكه د دواړو رائې جمع كول به ضروري وي ؟

**الجواب**: د دواړو رائې جمع کيدل د مقدمه پيش کاوه نه وړاندې ضروري دي.چه مقدمه مضبوطې سره قائمه کړې شي.او هرکله چې داسې ده.نو دواړه وکيلان دې د مقدمه پيش کاوه نه وړاندې صلاح او مشوره اوکړي.او مقدمه دې مضبوطه کړي.او بيا دې د قاضي مجلس ته يو وکيل لاړ شي.او مقدمه دې پيش کړي.بهرحال دا خبره ثابته شوه.چه د قاضي په مجلس کي دمقدمه پيش کاوه لپاره يو وکيل کيدل کافي دي.د دواړو جمع کيدل ضروري نه دي.

| |
|---|
| قَالَ: (أَوْبِطَلَاقِ زَوْجَتِهِ بِغَيْرِ عِوَضٍ) يا د عوض نه بغير خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو، لپاره ئې دواړه وکيلان کړي. (أَوْبِعِتْقِ عَبْدِهِ بِغَيْرِ عِوَضٍ) يا د عوض نه بغير خپل غلام آزادولو، لپاره ئې دواړه وکيلان کړي. أَوْبِرَدِّ وَدِيعَةٍ عِنْدَهُ يا دده سره د وديعت په واپس کاوه لپاره ئې دواړه وکيلان کړي. (أَوْقَضَاءِ دَيْنٍ عَلَيْهِ) يا کومه قرضه چې په ده موجود ده.د هغې د ادا کاوه لپاره ئې دواړه وکيلان کړي. |

② دوهم صورت داديے.چه دوي (دوه) سړي ددې خبرې وکيلان کړي.چه هغوی دواړه د عوض نه بغير دده ښځې ته طلاق ورکړي.په دې صورت کي به هم په دوی کي خاڼله يو وکيل ته د طلاق ور کاوه اختيار وي. ③ دريم صورت داديے.که دوي (دوه) سړي ئې بغير د عوض نه د خپل غلام آزادولو وکيلان کړل.نو بيا هم په دوی کي يو وکيل لپاره آزادول جائز دي. ④ څلورم صورت داديے.که يوکس سره دچا وديعت وي.او دا سړي د وديعت واپس کاوه لپاره دوي (دوه) سړي وکيلان کړي.نو صرف يو وکيل دا وديعت واپس کولې شي.

⑤ پنځم صورت داديے.چه په مؤکل کومه قرضه ده.د هغې د ادا کاوه لپاره مؤکل دوي (دوه) سړي وکيلان کړل.نو په دوی دواړو کي يو وکيل قرضه ادا کولې شي.

| |
|---|
| لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ لَايُحْتَاجُ فِيهَا إِلَى الرَّأْيِ څکه دا شيان داسې دي.چه په دې کي د رائې اړتيا نشته بَلْ هُوَتَعْبِيرٌ مَحْضٌ بلکه صرف د مؤکل کلام اداکول دي.وَعِبَارَةُ الْمَثْنٰى وَالْوَاحِدِ سَوَاءٌ او د دوي (دوه) او د يو تعبير کول دواړه برابر دي |

**دليلها**: په دې څلور واړه صورتونو کي د رائې او مشورې هيڅ اړتيا نشته.بلکه توکيل صرف د مؤکل کلام اداکول دي.يعنې طلاق، عتاق، وديعت اداکول،او پور اداکولو کي د وکيل کار بس صرف دومره دې.چه دمؤکل کلام ادا کړي.اوپه کلام ادا کاوه کي يو او دوي (دوه) دواړه برابر دي.څکه چې په معنی کي هيڅ اختلاف نشته.نو لکه څنگه چې دوي (دوه) سړي د مؤکل د کلام ترجماني کوي.دغه ډول به يوکس هم کوي.په دوی دواړو کي هيڅ توپير نشته.

| |
|---|
| وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لَهُمَا.ددې په خلاف کله چې دوی دواړو وکيلانو ته دا اووائي. طَلِّقَاهَا إِنْ شِئْتُمَا که تاسو غواړئ هغې ته طلاق ورکړئ. أَوْقَالَ أَمْرُهَا بِأَيْدِيكُمَا يا دا اووائي.چه ددې معامله ستاسو دواړو په لاس کي ده |

**صورة عدم نفاذ راي احدالوكيل في الطلاق**: په دې عبارت کي ابو الحسين قدوري د هغه صورت استثنی کوي.چې په هغې کي د دواړو وکيلانو رائې ته اعتبار وي هغه دا که يوکس دوي (دوه) وکيلانو ته اووئيل.چه زما ښځې ته که غواړئ.نو طلاق ورکړئ.يا ئې دا اووئيل.چه ددې ښځې د طلاق معامله ستاسو دواړو په اختيار کي ده.نو په دې دواړو صورتونو کي به صرف د يو وکيل تصرف کافي او جائز نه وي.بلکه د دواړو تصرف به ضروري وي.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ تَفْوِيضٌ إِلَى رَأْيِهِمَا څکه چې دا د دواړو رائې ته سپارل دي. أَلَاتَرَى أَنَّهُ تَمْلِيكٌ مُقْتَصِرٌ عَلَى الْمَجْلِسِ آيا ته نه گورې چه دا تمليك مجلس باندې منحصر دې |

**دليله الاول**: مؤکل د طلاق معامله ددوی دواړو رائې ته سپارلې ده.نو ددوی دواړو رائې جمع کيدل ضروري دي.او د مؤکل «طلقاها إن شئتما» وئيل.او «أمرها بأيديكما» وئيل.په حقيقت کي دوی دواړه د طلاق مالکان



جوړول دي.او تمليك چونکه په مجلس باندې منحصر کيږي.په دې وجه دا هم مجلس باندې منحصر دې.او دواړه وکيلانو لپاره به په مجلس کي دننه دننه طلاق ورکول جائز وي.بهرحال هرکله چې دواړه صورتونو کي وکيلان د طلاق مالکان جوړ کړې شوي دي.نو طلاق ورکول ددواړو مملوك شو.او هرکله چې طلاق ورکول د دواړو مملوك دي.نو په دې دواړو صورتونو کي به د يو بل په ملك کي تصرف باندې قادر نه وي.بلکه د دواړو تصرف کول به ضروري وي.

| |
|---|
| وَلِأَنَّهُ عَلَّقَ الطَّلَاقَ بِفِعْلِهِمَا او څکه چې ده طلاق د دواړو په فعل باندې معلق کړې دي. فَاعْتَبَرَهُ بِدُخُولِهِمَا نو دا ته ددوی دواړو په دخول باندې قياس کړه. |

**دليله الثاني**: مؤکل طلاق د دواړو وکيلانو په فعل باندې معلق کړې دي.نو طلاق به هغه وخت واقع کيږي.کله چې د دواړو وکيلانو د اړخه د طلاق ور کاوه فعل متحقق شي.اودا داسې ده.لکه چې څوك سړي دوي (دوه) سړو ته مخاطب شي.اودا اووائي.چه «إن دخلتما الدار فهي طالق» که تاسو دواړه په کور کي داخل شوئ.نو زما دې ښځې ته طلاق دې.نو په دې صورت کي به دې ښځې ته هغه وخت طلاق واقع کيږي.کله چې دواړه سړي کور ته داخل شي. دغه ډول په دې باندې قياس کاوه سره په ذکر شوي صورت کي به هم هغه وخت طلاق واقع کيږي.کله چې دواړه وکيلان طلاق ورکړي.

## د وکيل لپاره بل کس وکيل جوړولو حکم

| |
|---|
| قَالَ (وَلَيْسَ لِلْوَكِيلِ او وکيل ته دا حق نشته. أَنْ يُوَكِّلَ فِيمَا وُكِّلَ بِهِ) چې په کوم کار کي هغه وکيل جوړ کړې شوې دي.په هغې کي بل څوك وکيل کړي. لِأَنَّهُ فُوِّضَ إِلَيْهِ التَّصَرُّفُ څکه چې مؤکل وکيل ته په دې کي کارکي د تصرف اختيار ورکړې دي. دُونَ التَّوْكِيلِ بِهِ او په دې کارکي ئې د وکيل جوړولو اختيار نه دې ورکړې. وَهٰذَا لِأَنَّهُ رَضِيَ بِرَأْيِهِ اودا څکه چې مؤکل دده په رائې باندې راضي شوې دي. وَالنَّاسُ مُتَفَاوِتُونَ فِي الْآرَاءِ اود خلگو رائې مخلتف وي.. |

**عدم جوازتوكيل الوكيل غيره**: وکيل په کوم کار کي وکيل جوړ کړې شوې دې.دا وکيل په دغه کار کي بل څوك وکيل نشي جوړولې.

**دليله**: څکه چې مؤکل وکيل ته په دې کار کي تصرف سپارلې دې.د کوم چې دې وکيل جوړ کړې شوې دې او ددې تصرف لپاره بل څوك وکيل کول هغه ته نه دی سپارلی شوی.نو هغه له به بل څوك وکيل کول هم جائز نه وي.اود توکيل عدم جواز څکه دې.چه مؤکل صرف د وکيل په رائې باندې راضي شوې دې.اود خلگو رائې مختلف وي.نو دده په رائې باندې راضي کيدلو سره دبل په رائې باندې راضي کيدل نه لازميږي.او هرکله چې داسې ده.نو د وکيل د خپل ځان نه علاوه بل څوك ددې کار لپاره وکيل کول به هم ناجائز وي.

| |
|---|
| قَالَ (إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ الْمُوَكِّلُ) خودا چې مؤکل ده ته اجازت ورکړي. لِوُجُودِ الرِّضَا څکه چې رضامندي اوموندې شوه. |
| (أَوْيَقُولَ لَهُ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ) يا مؤکل وکيل ته اووائي.چه پخپله رائې باندې عمل اوکړه. لِإِطْلَاقِ التَّفْوِيضِ إِلَى رَأْيِهِ څکه چې دده رائې ته سپارل مطلق دی |

**صورة جوازتوكيل الوكيل**: خو که مؤکل خپل وکيل ته ددې خبرې اجازت ورکړي.نو وکيل ته دې دا اووائي چه ته پخپله رائې باندې عمل اوکړه.نو په دې صورت کي به هم دده لپاره وکيل کول جائز وي.څه چې دې صورت کي تصرف على الاطلاق د وکيل رائې ته سپارلې شوې دې.نود مؤکل اجازت او حکم لاندې د وکيل خپل ځان نه علاوه بل څوك وکيل کول به هم صحيح وي.مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په ذکر شوي دوي (دوه) صورتونو کي د وکيل توکيل کول جائز دي.

(وَإِذَا جَازَ فِي هَذَا الْوَجْهِ) او هرکله چې په دې صورت کې جائز دی. يَكُونُ الثَّانِي وَكِيلًا عَنِ الْمُوَكِّلِ نو دوهم به د موکل د اړخه وکیل وی. حَتَّى لَا يَمْلِكَ الْأَوَّلُ عَزْلَهُ تردې چې رومبی وکیل ده د معزول کاوه مالك نه دې. وَلَا يَنْعَزِلُ بِمَوْتِهِ او د رومبی وکیل په مرګ سره به هم نه معزول کیږی. وَيَنْعَزِلَانِ بِمَوْتِ الْأَوَّلِ او د موکل په مرګ سره به دواړه معزول کیږی. وَقَدْ مَرَّ نَظِيرُهُ فِي أَدَبِ الْقَاضِي او ددې مثال په ادب القاضی کې تیر شوې دې.

**الوكيل الثاني من الموكل الثاني دون الاول**◉ خو دوهم وکیل به د موکل د اړخه وکیل وی. د رومبی وکیل د اړخه به نه وی. ځکه به وکل اول ته د وکیل ثانی د معزول کاوه اجازت نه وی. او د وکیل اول په مرګ سره به وکیل ثانی نه معزول کیږی. البته د موکل په مرګ سره به دواړه معزول کیږی. مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه ددې مسئلې مثال په ادب القاضی کې د باب التحکیم نه وړاندې د، ،فصل آخر، ، لاندې تیرشوې دې.

### د موکل د اجازت نه بغیر د وکیل ثانی د جوړولو او د تصرف حکم

قَالَ (فَإِنْ وَكَّلَ بِغَيْرِ إِذْنِ مُوَكِّلِهِ) او که وکیل اول د موکل د اجازت نه بغیر دوهم وکیل جوړ کړو. فَعَقَدَ وَكِيلُهُ بِحَضْرَتِهِ نو د رومبی وکیل وکیل (یعنی وکیل ثانی) د رومبی وکیل په موجودګۍ کې عقد او کړو جَازَ) نو جائز دې.

**جوازتوكيل الوكيل غيره في حضورالموكل**◉ که وکیل د خپل موکل د اجازت نه بغیر څوك په دې معامله کې وکیل جوړ کړو په کوم کې چې پخپله دې وکیل جوړ کړې شوې دې. او وکیل ثانی د اول وکیل په موجودګۍ کې عقد اوکړو. نو دا عقد به جائز او نافذ وی.

لِأَنَّ الْمَقْصُودَ حُضُورُ رَأْيِ الْأَوَّلِ ځکه چې د موکل مقصود د وکیل اول د رائې موجود کیدل دی. او وَقَدْ حَضَرَ هغه دلته کې موجود ده.

**دليله**◉ ځکه د موکل مقصود دا وو. چه د وکیل اول رائې موجود وی. او په ذکرشوی صورت کې د وکیل اول رائې موجود شوه. نو هرکله چې د وکیل اول رائې موجود شوه. نو د موکل مقصود حاصل شو. او هرکله چې د موکل مقصود حاصل شو. نو د وکیل ثانی منعقد شوې عقد به هم جائز وی.

وَتَكَلَّمُوا فِي حُقُوقِهِ. او عالمانو ددې عقد په حقوقو کې کلام کړې دې.

**اختلاف العلماء في رجوع حقوق وكيل الثاني**◉ د عالمانو په دې اړه کې اختلاف دې. چه د وکیل ثانی د منعقد شوی عقد حقوق به کوم اړخ ته راجع کیږی. د عالمانو په منځ کې په دې خبره کې اختلاف ځکه پیدا شو. چه امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې ددې مسئلې هیڅ حکم نه دې ذکر کړې. ① بعض عالمان فرمائی. چه ددې عقد حقوق به وکیل اول اړخ ته راجع کیږی. ځکه چې موکل هم په دې خبره راضی شوې دې. چه ذمه داریانې او د عقد حقوق وکیل اول اړخ ته راجع شی. ② او بعض عالمان فرمائی. چه ددې عقد حقوق به وکیل ثانی اړخ ته راجع وی. ځکه چې سبب یعنی عقد د وکیل ثانی د اړخه موجود شوې دې. د وکیل اول د اړخه نه دې موجود شوې. او دچا د اړخه چې سبب یعنی عقد موجود شی. حقوق دعقد هم هغه اړخ ته راجع کیږی. په دې وجه به حقوق وکیل ثانی اړخ ته راجع کیږی.

(وَإِنْ عَقَدَ فِي حَالِ غَيْبَتِهِ) او که وکیل ثانی د وکیل اول په غیرموجودګۍ کې عقد او کړو (لَمْ يَجُزْ) نو جائز نه دې. لِأَنَّهُ فَاتَ رَأْيُهُ ځکه چې د وکیل اول رائې فوت شوه. (إِلَّا أَنْ يَبْلُغَهُ) خو که وکیل اول ته خبر اورسی فَيُجِيزَهُ بیا هغه دې اجازت ورکړی.

**عدم جوازالعقدفي غيبة الموكل**◉ او که وکیل ثانی د وکیل اول په غیرموجودګۍ کې عقد او کړو. نو دا عقد به جائز او نافذ نه وی.

**دليله**◉ ځکه چې په دې صورت کې د وکیل اول رائې موجود نه ده. او هرکله چې د وکیل او رائې فوت



شوه. نو د موکل مقصود حاصل نشو. او هرکله چې د موکل مقصود حاصل نشو. نو عقد به هم جائز نه وی.

**صورة جوازالعقد**◉ خو که د وکیل ثانی د عقد خبر وکیل ته اورسیدلو. او وکیل اول ددې عقد اجازت ورکړو. نو د وکیل اول د رائې متحقق کیدلو په وجه به دا عقد جائز او نافذ وی.

(وَكَذَا لَوْ بَاعَ غَيْرُ الْوَكِيلِ) دغه ډول که د وکیل [illegible] نه علاوه خرڅ کړو. فَبَلَغَهُ بیا وکیل اول ته خبر اورسیدلو (فَأَجَازَهُ) او هغه اجازت ورکړو. لِأَنَّهُ حَضَرَ رَأْيُهُ [illegible] چې د وکیل اول اجازت اوموندې شو.

**جوازالعقد ببلوغ الخبرالى الموكل**◉ دغه ډول که د وکیل نه علاوه کوم اجنبی سړی عقد اوکړو. او کله چې وکیل ته ددې عقد خبر ملاؤ شو. نو هغه ددې اجازت ورکړو. نو په دې صورت کې به هم عقد جائز وی. ځکه چې په دې صورت کې هم د وکیل په اجازت ورکولو سره د هغه رائې موجود شوې ده.

(وَلَوْ قَدَّرَ الْأَوَّلُ الثَّمَنَ لِلثَّانِي) او که وکیل اول د وکیل ثانی لپاره د ثمن اندازه بیان کړله. فَعَقَدَ بِغَيْبَتِهِ بیا وکیل ثانی د وکیل اول په غیر موجودګۍ کې عقد اوکړو. (يَجُوزُ) نو جائز به وی. لِأَنَّ الرَّأْيَ فِيهِ يُحْتَاجُ إِلَيْهِ لِتَقْدِيرِ الثَّمَنِ ظَاهِرًا ځکه چې مضارب د ثمن اندازه کاوه لپاره په عقد کې رائې ته اړتیا وی. وَقَدْ حَصَلَ، او رائې حاصله شوه.

**صورة تقديرالثمن**◉ او که وکیل اول د وکیل ثانی په وړاندې د هغه شی ثمن متعین کړو. د کوم شی د خرڅولو چې وکیل جوړ کړې شوې وو. بیا وکیل ثانی د وکیل اول په غیرموجودګۍ کې دا څیز د دغه متعین شوی ثمن په عوض خرڅ کړو. نو دا خرڅول یعنی عقد کول به جائز وی.

**دليله**◉ ځکه چې په ښکاره عقد کې د ثمن متعین کاوه لپاره د رائې اړتیا راپیښیږی. او دا مقصود یعنی ثمن متعین کول حاصل شوی دی. او هرکله چې مقصود حاصل شو نو د وکیل اول موجود کیدل ضروری نشو.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا او دا ددې خلاف دې. إِذَا وَكَّلَ وَكِيلَيْنِ کله چې موکل دوې (دوه) وکیلان کړې وی. وَقَدَّرَ الثَّمَنَ، او د ثمن اندازه ئې بیان کړې وی. لِأَنَّهُ لَمَّا فَوَّضَ إِلَيْهِمَا مَعَ تَقْدِيرِ الثَّمَنِ ځکه هرکله چې د ثمن اندازه کاوه باوجود عقد دوې (دوه) وکیلانو ته اوسپارلې شو. ظَهَرَ نو ښکاره ده. أَنَّ غَرَضَهُ اجْتِمَاعُ رَأْيِهِمَا فِي الزِّيَادَةِ وَاخْتِيَارِ الْمُشْتَرِي چې د موکل مقصد د ثمن زیاتوالی او د مشتری په خوښوالی کې د دواړو رائ جمع کیدل دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ، لکه چې مونږ بیان کړی دی.

**حكم عقد توكيل الوكيلين**◉ خو که یو کس د سامان خرڅولو لپاره دوې (دوه) وکیلان مقرر کړل او موکل ددې سامان هم متعین کړو. نو د متعین ثمن په عوض به صرف د یو وکیل خرڅول صحیح نه وی. بلکه د دواړو وکیلانو رائې جمع کول به ضروری وی.

**دليله**◉ ځکه چې د موکل ثمن متعین کاوه باوجود د ذکر شوی شی خرڅولو لپاره دوې (دوه) وکیلان مقرر کول، ددې خبرې دلیل دې چه د موکل مقصود دا دې چه د دوې (دوه) وکیلانو رائې جمع کیدلو سره به متعین شوی ثمن کې اضافه اوشی. یا به دواړه وکیلان یوځائې داسې مشتری منتخب کړی. چه هغه په ثمن ادا کاوه کې ټال مټول نه کوی. بهرحال هرکله چې د ثمن معین کاوه باوجود دوې (دوه) وکیلان مقررولو سره د موکل دا مقصد ترلې شوې دې. نو صرف د یو وکیل خرڅول به صحیح نه وی. بلکه د دواړو یوځائې خرڅول به ضروری وی.

أَمَّا إِذَا لَمْ يُقَدِّرِ الثَّمَنَ خو کله ئې چې د ثمن اندازه بیان نکړله. وَفَوَّضَ إِلَى الْأَوَّلِ او عقد وکیل اول ته اوسپارلې شو. كَانَ غَرَضُهُ رَأْيَهُ فِي مُعْظَمِ الْأَمْرِ نو د موکل غرض د ټولو نه لویه خبره ده وَهُوَ التَّقْدِيرُ فِي الثَّمَنِ یعنی د ثمن اندازه کولو کې د دوی رائې طلب کول دی.

**حكم صورة عدم تعيين الثمن**◉ خو کله چې موکل ثمن متعین نکړو. بلکه عقد بیع ئې وکیل اول ته اوسپارلو. نو په دې صورت کې د موکل مقصد دا دې چه د عقد بیع په سبب [illegible] هم معامله یعنی ثمن متعین کولو کې د

وکيل اول راتي موجود وی. نو هرکله چې وکيل اول د مبيع ثمن متعين کړو. نو په ثمن متعين کاوه کي د وکيل راتي حاصل شوه. او هرکله چې دوکيل اول راتي حاصل شوه. نو په دې صورت کي د وکيل اول په غير موجودګۍ کي به د وکيل ثاني خرڅول صحيح نه وی.

**د مکاتب، يا غلام يا د ذمي د خپلې وړې مسلماني لور په ذات يا مال کښې تصرف کول**

قَالَ ﴿وَإِذَا زَوَّجَ الْمُكَاتَبُ أَوِ الْعَبْدُ أَوِ الذِّمِّيُّ ابْنَتَهُ وَهِيَ صَغِيرَةٌ حُرَّةٌ مُسْلِمَةٌ﴾ او هرکله چې مکاتب يا غلام يا ذمي د خپلې آزادي مسلماني صغيرې لور نکاح اوکړله. ﴿أَوْ بَاعَ أَوِ اشْتَرَى لَهَا﴾ يا ئې دهغې لپاره خرڅول کړل. يا اخستل اوکړل. ﴿لَمْ يَجُزْ﴾ نوجائز نه دی. مَعْنَاهُ او ددې مطلب التَّصَرُّفُ فِي مَالِهَا د هغې په مال کي تصرف کول دی. لِأَنَّ الرِّقَّ وَالْكُفْرَ يَقْطَعَانِ الْوِلَايَةَ ځکه چې رقيت او کفر دواړه ولايت منقطع کوی. أَلَا يُرَى آيا نشی کتلې. أَنَّ الْمَرْقُوقَ لَا يَمْلِكُ إِنْكَاحَ نَفْسِهِ چې مملوك د خپل ذات نکاح نشی کولې فَكَيْفَ يَمْلِكُ إِنْكَاحَ غَيْرِهِ. نو د غير نکاح به څنګه کولې شی.

**عدم جوازتصرف بعض الافراد في نفس بنتهم الصغيرة ومالها**⊛ که مکاتب، يا غلام، يا ذمي د خپلې ازادې مسلماني نابالغې لور نکاح اوکړله. يا ئې د هغې لپاره د هغې څه سامان خرڅ کړو. يا ده د مال په عوض هغې لپاره څه واخستل. نودا واړه تصرفات به ناجائز وی. په متن کي د بيع او شراء نه مراد مطلق تصرف دې. يعني ددې حضراتو لپاره د ذکرشوی صغيرې په مال کي د هيڅ قسمه تصرف حق نشته.

**دليله الاول**⊛ رقيت او کفر دواړه ولايت منقطع کوی. يعني ذکر شوی تصرفات د ولايت د قبيلې څخه دی. او په غلام اومکاتب کي رقيت، او په ذمي کي کفر دا ولايت ختموی. نوهر کله چې مملوك ته پخپله د خپلې نکاح ولايت حاصل نه دې. نود بل د نکاح ولايت به څنګه حاصل وی. ځکه چې په بل باندې دولايت حاصليدل ددې خبرې فرع ده. چه پخپله هغه ته پخپل ذات باندې اعتماد حاصل وی. نو هرکله چې غلام اومکاتب ته پخپل ذات باندې ولايت حاصل نه دې. اودا واړه به حاصليږی څنګه، حالانکه کافر ته په مسلمان باندې ولايت حاصل نه دې. هم دا وجه ده. چه د کافر ګواهي په مسلمان باندې نه قبليږی. ﴿وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾ نو هغه ته به په مسلماني انجلی په نکاح باندې ولايت څنګه حاصل وی.

وَكَذَا الْكَافِرُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الْمُسْلِمِ او هم دغه ډول کافرته په مسلمان باندې ولايت نشته حَتَّى لَا تُقْبَلَ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِ. تردې چې د مسلمان خلاف د کافر ګواهي نه قبليږی وَلِأَنَّ هَذِهِ وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ. او ځکه چې دا ولايت نظری ( او قابل شفقت) دې. فَلَا بُدَّ مِنَ التَّفْوِيضِ إِلَى الْقَادِرِ الْمُشْفِقِ نو قادر، مشفق ته سپارل ضروری دی لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى النَّظَرِ. چه د نظر او شفقت معنی متحقق شي. وَالرِّقُّ يُزِيلُ الْقُدْرَةَ او رقيت قدرت زائل کوی. وَالْكُفْرُ يَقْطَعُ الشَّفَقَةَ عَلَى الْمُسْلِمِ او کفر مسلمان باندې شفقت زائل کوی فَلَا تُفَوَّضُ إِلَيْهِمَا. نودا ولايت به دې دواړو ته نه سپارلې کيږی

**الدليل الثاني**⊛ د ماشومانو هلکانو او جينکو لپاره کوم ولايت حاصل دې. د هغې دارومدار په نظر او شفقت باندې دې. نو په صغير او صغيره به هغه کس ته ولايت حاصل وی. څوك چې قادر هم وی. او مشفق هم وی. حالانکه رقيت قدرت زائل کوی. الله تعالی فرمائيلی دی. ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ﴾ او کفر په مسلمان باندې شفقت ختموی. نو هرکله چې په غلام اومکاتب کي قدرت موجود نه دې. اوپه ذمي کافر کي شفقت نشته. نو دوی ته به ولايت هم حاصل نه وی. او هرکله چې دوی ته ولايت حاصل نه دې. نو ددوی تصرفات به هم معتبر نه وی.

(قَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: رحمهما الله و ابويوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائی. ﴿وَالْمُرْتَدُّ إِذَا قُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ﴾ چې مرتد کله پخپل ردکي قتل کړې شو. ﴿وَالْحَرْبِيُّ كَذَلِكَ﴾ او حربی هم دغه شان. لِأَنَّ الْحَرْبِيَّ أَبْعَدُ مِنَ الذِّمِّيِّ ځکه چې حربی



د ذمي په نسبت زيات لرې دې. فَأَوْلَى بِسَلْبِ الْوِلَايَةِ نو په درجه اولي به دده ولايت سلب کيږی. وَأَمَّا الْمُرْتَدُّ فَتَصَرُّفُهُ فِي مَالِهِ وَإِنْ كَانَ نَافِذًا عِنْدَهُمَا مرتد دده تصرف دده په مال کي نافذ دې. خواګرچه د صاحبينو رحمهما الله په نيز لَكِنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى وَلَدِهِ وَمَالِ وَلَدِهِ بِالْإِجْمَاعِ خو دده تصرف دده د ولد او دده د ولد په مال کي بالاجماع موقوف دې.

**عدم جوازتصرف المرتد في مال اولاده**⊛ صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه مرتد هرکله پخپل ردت باندې قاتل کړې شو. او حربی ، ددوی دواړو تصرف ددوی مسلمان اولاد باندې، او د هغوی په مال باندې جائز نه دې ځکه چې حربی اګرچه مستامن وی. د ذمي نه زيات لرې دې. يعني ذمي مسلمانانو ته زيات نژدې دې. په نسبت د حربی. او وړاندې تير شوی دی. چه ذمي ته په مسلمان باندې ولايت نه وی. نو حربی ته به په درجه اولي باندې مسلمان باندې ولايت حاصل نه وی. او پاتې شو مرتد ، نو دهغه تصرف پخپل مال کي د صاحبينو رحمهما الله په نيز اګرچه نافذ دې. خود هغه تصرف د هغه په اولاد اود هغه د اولاد په مال باندې بالاجماع موقوف دې. يعني مرتد که مسلمان شو. نود هغه تصرف به جائز وی. اوکه مسلمان نه وی. بلکه قتل کړې شو يا مړ شو. يا دارالحرب ته لاړو. نود هغه تصرف به نه نافذيږی.

لِأَنَّهَا وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ ځکه چې دا ولايت نظری دې. وَذَلِكَ بِاتِّفَاقِ الْمِلَّةِ او نظر او شفقت د ملت متفق کيدلو په صورت کي کيږی. وَهِيَ مُتَرَدِّدَةٌ، حالانکه د مرتد ملت متردد دې.

**دليله**⊛ ځکه چې د پلار ولايت په اولاد اود اولاد په مال باندې نظری دې. يعني پلار ته پخپله اولاد اود اولاد په مال باندې ولايت ځکه حاصليږی. چه پلار د اولاد په حق کي مشفق وی. خود پلار او خوی په منځ کي نظر او شفقت هغه وخت متحقق کيږی. کله چې ددوی دواړو مذهب او ملت يو وی. حالانکه دلته کي د مرتد ملت متردد دې. دا هم کيداې شی. چه دوباره اسلام قبول کړی. اودا هم کيداې شی چه هغه ته د اسلام توفيق نه وی.

ثُمَّ تَسْتَقِرُّ جِهَةُ الِانْقِطَاعِ إِذَا قُتِلَ عَلَى الرِّدَّةِ بيا هرکله چې دې پخپل ردت باندې قتل کړې شو نود انقطاع اړخ مستقر(او مستقل)شو. فَيَبْطُلُ. نو دده تصرف به باطل وی. وَبِالْإِسْلَامِ يُجْعَلُ اود اسلام په وجه به داسې ګرځولې شی كَأَنَّهُ لَمْ يَزَلْ مُسْلِمًا. لکه چې دې برابر مسلمان پاتې شوې وی فَيَصِحُّ نو دده تصرف به صحيح وی.

**تشريح: الوكيل بالخصومة وكيل بالقبض فيه مذهبان**⊛ ① د جمهورو احنافو رحمهم الله په نيز اود امام شافعي رحمه الله يو قول هم دا دې که يو سړی په بل سړی باندې د پور دعوه اوکړله. او مدعی د خصومت او مقدمه چلولو لپاره څوك وکيل کړو. نوکه په مدعی عليه باندې قرضه ثابته شوه. نو وکيل بالخصومت به ددې پور د وصولولو اوپه دې باندې د قبضه کاوه وکيل وی

**انقطاع ولاية المرتد بالقتل**⊛ هرکله چې مرتد د ردت په حالت کي قتل کړې شو. نود پلار او اولاد په منځ کي د ملت اتحاد نه کيدلو په وجه د هغه ولايت منقطع کيدل متحقق شو. او هرکله چې د هغه ولايت منقطع کيدل متحقق شو. نود هغه تصرف به هم باطل وی. او که مرتد اسلام قبول کړو. نود اسلام قبلولو په وجه داسې شو. لکه چې دې د مخکې مسلمان راروان دې. او هرکله چې په دې صورت کي مسلمان راروان دې. نود ملت د اتحاد په وجه به دده ولايت نه منقطع کيږی. او هرکله چې ولايت نه منقطع نه کيږی. نود هغه تصرف به هم جائز او نافذ وی.

## باب الوكالة بالخصومة والقبض

ژباړه: ( دا) باب د خصومت کاوه اود قبضه کاوه د وکالت ( په بيان کي ) دې.

**وكيل بالخصومة وكيل بالقبض كيدى شي كه نه ؟**

قَالَ ابو الحسين قدوري رحمه الله فرماني: (الْوَكِيلُ بِالْخُصُومَةِ وَكِيلٌ بِالْقَبْضِ) عِنْدَنَا چې زموږ په نيز وكيل بالخصومت وكيل بالقبض هم وي.

**تشريح: الوكيل بالخصومة وكيل بالقبض** ①: د جمهورو احنافو رحمهم الله په نيز او د امام شافعي رحمه الله يو قول هم دا دې كه يو سړی په بل سړي باندې د پور دعوه اوكړله. او مدعی د خصومت او مقدمه چلولو لپاره څوك وكيل كړو. نو كه په مدعی عليه باندې قرضه ثابته شوه. نو وكيل بالخصومت به ددې پور د وصولولو او په دې باندې د قبضه كاوه وكيل وي

خِلَافًا لِزُفَرَ. د امام زفر رحمه الله اختلاف دې هُوَ يَقُولُ امام زفر رحمه الله فرماني. رَضِيَ بِخُصُومَتِهِ چې مؤكل په خصومت باندې راضي شوې دې. وَالْقَبْضُ غَيْرُ الْخُصُومَةِ او قبضه د خصومت نه علاوه ده. وَلَمْ يَرْضَ بِهِ. او مؤكل په دې باندې نه دې راضي شوې

**تشريح:** او دامام زفر رحمه الله په نيز دغه ډول د امام شافعي رحمه الله ظاهري قول هم دادې. د امام مالك او امام احمد رحمهما الله مذهب هم دادې. چه وكيل بالخصومت وكيل بالقبض نشي كيدې.

**دليله**: په خصومت او قبضه كې تغاير دې. ځكه چې خصومت هغه قول دې. كوم چې دحق اظهار لپاره ونيلې كيږي. او قبضه فعل حسي ده. او مؤكل د وكيل په خصومت كاوه باندې راضي شوې دې. د هغه په قبضه كاوه نه دې راضي شوې. ځكه چې خصومت لپاره داسې سړې منتخب كولې شي. چه هغه ډير چالاكه او حاضر خوابه وي. او د قبضې لپاره د امانت دار سړی انتخاب كولې شي. نو كوم سړې چې د خصومت صلاحيت لري. خلگ په عامه توگه (عام طور) باندې د هغه په امانت او ديانت باندې نه راضي كيږي. نو ثابته شوه. چه مؤكل د وكيل په خصومت باندې راضي دې. خود هغه په قبضه كاوه باندې راضي نه دې. او هركله چې مؤكل د وكيل بالخصومت په قبضه باندې راضي نه دې. نو وكيل بالقبضه به هم نه وي.

وَلَنَا او زموږ دليل دادې. أَنَّ مَنْ مَلَكَ شَيْئًا مَلَكَ إِتْمَامَهُ چې كوم سړې د څه شي مالك شو. هغه د هغې د پوره كاوه مالك شو. وَإِتْمَامُ الْخُصُومَةِ وَانْتِهَاؤُهَا بِالْقَبْضِ او خصومت پوره كول اودا انتهاء ته رسول په قبضه سره كيږي.

**تشريح: دليلنا**: كه يو سړې د څه شي مالك جوړ كړې شو. نو هغه ددې د مكمل كاوه او انتهاء ته د رسولو مالك شو. نود خصومت وكيل د خصومت پوره كاوه او انتهاء ته د رسولو وكيل به وي. اود خصومت تكميل په قبضه سره كيږي. يعنی د قرضه په سلسله كې د خصومت وكيل تر كومه پورې چې په قرضه باندې قبضه اونكړي تر هغه وخته پورې به د هغه خصومت مكمل نه وي. او هركله چې د پور خصومت د قبضې نه بغير نه مكمل كيږي. نو كوم سړې چې د خصومت وكيل وي. هغه به په قرضه باندې د قبضه كاوه وكيل هم ضرور وي. كه مؤكل هغه لره د قبضې وكيل كړې وي. اوكه نه وي.

وَالْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى قَوْلِ زُفَرَ رَحِمَهُ اللَّهُ (¹) او نن سهار د امام زفر رحمه الله په قول باندې فتوی ده. لِظُهُورِ الْخِيَانَةِ فِي الْوُكَلَاءِ، ځكه چې وكيلانو كې خيانت ښكاره شو. وَقَدْ يُؤْتَمَنُ عَلَى الْخُصُومَةِ مَنْ او كله كله د هغه سړي په خصومت باندې اطمينان كيږي. لَا يُؤْتَمَنُ عَلَى الْمَالِ دچا په مال وصولولو چې اطمينان نه وي.

ﷺ مرغيناني رحمه الله فرماني. چه نن سهار فتوی د امام زفر رحمه الله په قول وركولې شي. ځكه چې نن سهار په وكيلانو كې خيانت زيات شو او ډير خله داسې كيږي. چه د يو وكيل په خصومت باندې اعتماد او اطمينان كيږي. خود هغه په مال وصولولو باندې اطمينان نه كيږي. نو په داسې صورت كې دې د خصومت وكيل كولې شي. خود قبضې وكيل نشي جوړولې. بهرحال هركله چې دا خبره ده. نو فتوی به هم دا وي. چه د

(¹) القول الراجح هو قول زفر رحمه الله والفتوى عليه اليوم (كذا فى نتائج الأفكار(١٠٠\١٧) والكفاية (١٠٠\١٧) ...المحتار (٤٥٨\١٤)



خصومت وكيل به صرف د خصومت وكيل وي. او قرضه باندې د قبضه وكيل به نه وي.

وَنَظِيرُهُ الْوَكِيلُ بِالتَّقَاضِي يَمْلِكُ الْقَبْضَ عَلَى أَصْلِ الرِّوَايَةِ ددې مثال د پور طلب كاوه وكيل د قبضه كاوه مالك هم وي. د اصل روايت مطابق. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَاهُ وَضْعًا، ځكه چې په لغت كې دتقاضي معنی د قبضه په معنی كې ده. إِلَّا أَنَّ الْعُرْفَ بِخِلَافِهِ خو دا چې عرف ددې خلاف دې. وَهُوَ قَاضٍ عَلَى الْوَضْعِ او عرف په وضع باندې حاكم وي. وَالْفَتْوَى عَلَى أَنْ لَا يَمْلِكَ خو فتوی په دې ده. چه د تقاضي وكيل به د قبضه مالك نه وي.

**نظيره**: مرغيناني رحمه الله فرماني. ددې مسئلې مثال دادې. چه تقاضي يعنې د پور ادا كاوه د مطالبې وكيل د مبسوط د روايت مطابق په دې باندې د قبضه وكيل هم وي. يعنی كوم سړې چې د قرضدار نه د پور د مطالبې وكيل جوړ كړې شوې دې. هم هغه به په دې قرضه باندې د قبضه كاوه وكيل هم وي. يعنی دا وكيل به مطالبه هم كوي. او په هغې به قبضه هم كوي. ځكه چې لفظ د تقاضي د لغت په اعتبار سره د قبضه په معنی كې ده. نو هركله چې دا لفظ د قبضه په معنی كې دې. نود تقاضي د لفظ په ذريعه به دغه سړې د مطالبې او قبضه دواړو وكيل وي. خو عرف د لغت په خلاف دې. ځكه چې عرف كې لفظ د تقاضي نه صرف د مطالبې معنی اخستلې شي. اود قبضې معنی نشي اخستلې. او قاعده ده. چه عرف د لغت نه راجح وي. يعنی په عرف او لغت كې د تعارض په وخت عرف ته ترجيح وركولې شي. او هركله چې دلته كې عرف راجح دې. نو فتوی به هم په دې باندې وي. چه د تقاضي او مطالبې وكيل به په دين باندې د قبضه وكيل نه وي. او دې وكيل ته به په قرضه باندې د قبضه كاوه اختيار نه وي.

### د خصومت دوو وكيلانو لپاره د قبضې كولو حكم

قَالَ (فَإِنْ كَانَا وَكِيلَيْنِ بِالْخُصُومَةِ) اوكه د خصومت دوې (دوه) وكيلان وي. (لَا يَقْبِضَانِ إِلَّا مَعًا) نو په قبضه باندې دواړه يوځاني قبضه كولې شي. لِأَنَّهُ رَضِيَ بِأَمَانَتِهِمَا ځكه چې مؤكل ددوی دواړو په امانت باندې راضي شوې دې. لَا بِأَمَانَةِ أَحَدِهِمَا، په دوی دواړو كې د يو كس په امانت باندې نه دې راضي شوې. وَاجْتِمَاعُهُمَا مُمْكِنٌ او ددوی دواړو جمع كيدل ممكن هم دی. بِخِلَافِ الْخُصُومَةِ عَلَى مَا مَرَّ په خلاف د خصومت، لكه چې تير شو.

**يكون قبض الوكيلان معا**: كه دوې (دوه) سړي د خصومت وكيل وي. او مال باندې د قبضه كاوه وخت راشي. نودا دواړه په يوځاني قبضه كوی شي. صرف د يو كس قبضه به معتبر نه وي.

**دليله**: مؤكل د دواړو وكيلانو په امانت باندې راضي شوې دې. په دوی دواړو كې د يوكس په امانت باندې نه دې راضي شوې. نود دواړو قبضه كول ضروري ده. او ددوی دواړو اجتماع شرعاً ممكن هم ده. په دې طريقه چې دواړه وكيلان يو ځائې شي. او قبضه اوكړي. ددې په خلاف د خصومت دوې (دوه) وكيلان دی. چه ددوی دواړو يوځائې كيدل چونكه شرعاً ناممكن او متعذر دی. لكه څنگه چې وړاندې تير شوی دی. په دې وجه خصومت لپاره د قاضي په مجلس كې د وكيلان راجمع كيدل ضروري نه دی. بلكه كه يو وكيل هم مقدمه پيش كړي. نو صحيح به وي.

### دامام ابوحنيفه په نيز وكيل بالقبض به وكيل بالخصومة هم وي

قَالَ (وَالْوَكِيلُ بِقَبْضِ الدَّيْنِ يَكُونُ وَكِيلًا بِالْخُصُومَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ) (¹) و په قرضه باندې د قبضه كاوه وكيل به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د خصومت وكيل هم وي. حَتَّى لَوْ أُقِيمَتْ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةُ عَلَى اسْتِيفَاءِ الْمُوَكِّلِ تردې كه په وكيل باندې بينه قائم كړې شو. چه مؤكل قبضه وصول كړې ده. أَوْ إِبْرَائِهِ يا مؤكل قرضدار بری كړې دې. تُقْبَلُ عِنْدَهُ، نود امام صاحب رحمه الله په نيز به دا بينه قبلولې شي.

(¹) القول الراجح هوهذا قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا فى كنز(ص، ١٩٤) وملتقى الأبحر(٢٤٢\٢) وتنوير الأبصار (٤٥٨\١٤) نقلاً عن القول ا لراجح (١٦٢\٢)

**وكيل قبض الدين يكون وكيل الخصومة**⊛ ① دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د پور په قبضه كاوه لپاره چې كوم سړي وكيل وي، هغه به د خصومت وكيل هم وي.تردې كه قرضدار د وكيل بالقبض خلاف په دې خبره بينه قائم كړل چه مؤكل قرضه وصول كړې ده.يا مؤكل قرضدار د پور نه برى كړې دې.نود امام صاحب رحمه الله په نيز به دا بينه قبلولې شي.

وَقَالَا:او صاحبين رحمهما الله فرمائي.لَايَكُونُ خَصْمًا چې وكيل به مدعى عليه نه وي.وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ هم دا يو روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن رحمه الله دې.

**مذهب الصاحبين**② او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه قرضه باندې د قبضه كاوه وكيل د خصومت وكيل نشي كيدلې.او هركله چې وكيل بالقبض د خصومت وكيل نشي كيدلې.نودا وكيل به د قرضدار خصم او مدعى عليه هم نه وي.اوهركله چې دا وكيل خصم او مدعى عليه نه دې.نو دده خلاف د قرضدار د اړخه پيش كړې شوې بينه به هم نه قبليږي.د امام ابوحنيفه رحمه الله د حسن بن زياد رحمه الله يو روايت هم دادې.اود امام شافعي رحمه الله اصح قول هم دادې.اود ظاهرالرواية مطابق امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

لِأَنَّ الْقَبْضَ غَيْرُ الْخُصُومَةِ،خكه چې قبضه د خصومت نه غير ده. وَلَيْسَ كُلُّ مَنْ يُؤْتَمَنُ عَلَى الْمَالِ يَهْتَدِي فِي الْخُصُومَاتِ اودا خبره ضروري نه ده.چه كوم سړي د مال په سلسله كې د اطمينان قابل وي.هغه دې د مقدماتو پيروي (او تابعداري) هم اوكړي.فَلَمْ يَكُنِ الرِّضَا بِالْقَبْضِ رِضًا بِهَا. نود مؤكل د وكيل په قبضه باندې راضي كيدل به دده په خصومت باندې راضي كيدل نه وي.

**دلائلهما**⊛ ①دليل دادې.چه د دين قبضه اود خصومت په منځ كې تغاير دې.او هركله چې ددې دواړو په منځ كې تغاير دې.نو وكيل بالقبض به وكيل بالخصومت نه وي.② دوهم دليل دادې.چه د كوم سړي ديانت او امانت قابل اعتماد وي.هغه لپاره دا ضروري نه ده.چه هغه به د مقدمې پيروي هم كولې شي.يعنې ډير خلگ په امانت او ديانت كې قابل اطمينان وي.خود مقدماتو په چلولو كې بالكل بې رائې (ناقابله) سوي.نو په داسې صورت كې كه مؤكل د وكيل د دين په قبضه باندې راضي شو.نو په دې سره د وكيل د خصومت او مقدمې پيروي كاوه باندې راضي كيدل نه لازميږي.او هركله چې داسې ده.نو وكيل بالقبض به وكيل بالخصومت نه وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.أَنَّهُ وَكَّلَهُ بِالتَّمَلُّكِ چې مؤكل هغه د مالك جوړولو وكيل كړې دې.لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضَى بِأَمْثَالِهَا،خكه چې ديون بامثالها ادا كولې شي.إِذْ قَبْضُ الدَّيْنِ نَفْسِهِ لَا يُتَصَوَّرُ خكه چې په عين دين باندې قبضه كول مقصود نه دي.إِلَّا أَنَّهُ جُعِلَ اسْتِيفَاءً لِعَيْنِ حَقِّهِ مِنْ وَجْهٍ،خودا من وجه د عين حق وصولول ګرځولې شوې دي.

**دليله**⊛ مؤكل وكيل ددې خبرې وكيل جوړ كړې دې چه د قرضدار په ذمه كومه قرضه ده.د هغې په مقابله كې چې وكيل په كوم باندې قبضه كوي.د هغه مقبوض به مالك جوړيږي.اودا ځكه اوونيل.چه ديون او پور بامثالها ادا كولې شي.او باعيانها نشي اداكولې.ځكه چې دا وصف دې.چه د قرضدار په ذمه ثابت وي.او په وصف باندې قبضه ناممكن ده.نو بعينه په دين او قرضه باندې قبضه كول به هم ناممكن وي.ددې مثال دادې.چه خالد شاهد ته سل روپۍ پور وركړو.نو شاهد قرضدار دغه روپۍ خرچ كړې.نو اوس په پور كې بعينه هم هغه روپۍ نشي وصول كيدلې.او هركله چې دغه روپۍ نشي وصول كيدلې.نو مجبوراً به قرضدار د هغې مثل ادا كوي.او كله چې قرضدار د پور مثل اداكوي.نو معلومه شوه.چه وكيل د اصل پور په ځاى د هغې په مثل باندې ملكيت حاصلوي.نو ګويا مؤكل دې د ملك حاصلولو لپاره وكيل كړې دې.

**الاعتراض**⊛ خو په دې باندې اعتراض كيږي.چه هركله عين قرضه نشي وصوليدلې.نودا ونيل به ځنګه صحيح وي.چه قرضخواه خپله قرضه وصول كړې ده.حالانكه هم دا ونيلې شي ؟

**الجواب**⊛ ددې ځواب دادې.چه د پور په مثل كوم شي وركړې شوې دې.هغه د مثل كيدلو په وجه د عين حق



مساوي او برابر دې.او هركله چې وصول شوې شي د عين حق مساوي او برابر دې.نودا من وجه د عين حق وصولول او ګڼړلې شو.او هركله چې دا من وجه د عين حق وصولول اوګرځولې شو.نودا ونيل به هم صحيح وي.چه قرضخواه خپله قرضه وصول كړې ده.

فَأَشْبَهَ الْوَكِيلَ بِأَخْذِ الشُّفْعَةِ وَالرُّجُوعِ فِي الْهِبَةِ وَالْوَكِيلَ بِالشِّرَاءِ وَالْقِسْمَةِ وَالرَّدِّ بِالْعَيْبِ،نو د قبضه وكيل د هغه وكيل مشابه شو.كوم چې د شفعه اخستلو، هبه واپس كولو.اخستلو دپاره.د بټوارې (او تقسيم) دپاره، اود عيب په وجه د واپس كاوه وكيل جوړ كړې شوې وي.وَهَذِهِ أَشْبَهُ بِأَخْذِ الشُّفْعَةِ او وكالت بالقبض د قبضه اخستلو وكالت سره زيات مشابه دې.حَتَّى يَكُونَ خَصْمًا قَبْلَ الْقَبْضِ تردې چې وكيل بالقبض د قبضه كاوه نه وړاندې د قرضدار په مقابله كې خصم وي.كَمَا يَكُونُ خَصْمًا قَبْلَ الْأَخْذِ هُنَالِكَ لكه څنګه چې وكيل د شفعه د شفعه اخستلو نه وړاندې خصم وي.وَالْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ لَا يَكُونُ خَصْمًا قَبْلَ مُبَاشَرَةِ الشِّرَاءِ، او وكيل بالشراء د اخستلو نه وړاندې خصم نه وي.

**صورمشابهته**⊛ او هركله چې دا ثابته شوه.چه قرضه باندې دقبضه كاوه وكيل ته د اصل پور په مثل شي باندې د مالك كيدلو حق حاصليږي.نو دې وكيل ته به د خصومت حق هم حاصل وي.نو هغه به د قرضدار په مقابله كې خصم او مدعى عليه هم وي.او هركله چې وكيل بالقبض د قرضدار په مقابله كې خصم او مدعى عليه دې.نو د قرضدار د اړخه پيش كړې شوې بينه به هم قبلولې شي.① لكه څنګه چې د شفعه اخستلو وكيل دې.چه د شفعه اخستلو وكيل د مشتري په مقابله كې خصم كيدلې شي.نوكه مشتري د شفعه اخستلو د وكيل په مقابله كې په دې خبره بينه پيش كړي.چه مؤكل مشتري ته شفعه سپارلې ده.يعنې مؤكل د مشتري په حق كې د شفعې د حق نه خلاص دې (او ذمه وار نه دې).نودا بينه به قبول وي.دغه ډول وكيل بالقبض د خصومت وكيل دې.② او لكه د هبه اخستلو وكيل د خصومت وكيل كيدلې شي.مثلاً مؤكل چاته څه شي هبه كړو.بيا ئې يو وكيل اوليګلو.چه د موهوب له نه هبه واپس واخلي.نو موهوب له وكيل باندې بينه پيش كړل.چه واهب زمانه د موهوب شي عوض اخستې دې.نود موهوب له دا بينه به قبول وي.او لكه وكيل بالشراء چې هغه خصم دې.چه د عقد د حقوقو د هغه نه مطالبه كولې شي.د مؤكل نه نه كيږي.تردې كه بائع بينه قائم كړل.چه وكيل بالشراء ثمن نه دې اداكړې.نودا بينه به قبول وي.او لكه په مشترك څيزكې بټوارې او ويش لپاره چايو كس وكيل جوړ كړو.او وې ليګلو.نو شريك بينه قائم كړل.چه دده مؤكل خپله برخه وصول كړې ده.نودا بينه به قبول وي.او لكه مشتري د عيب په وجه د مبيع واپس كاوه وكيل كړو.او بائع بينه قائم كړل.چه دده مؤكل په دې عيب باندې راضي شوې دې.نودا بينه به قبولې شي.هم دا حال قرضه باندې د قبضه كاوه د وكيل دې.

ⓐ صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه وكيل بقبض الدين د وكيل باخذالشفعه سره زيات مشابه دې.په نسبت د وكيل بالشراء.ځكه چې قرضه باندې د قبضه كاوه وكيل د قبضه نه وړاندې د قرضدار په مقابله كې خصم ګڼړلې شي.او پاتې شو وكيل بالشراء، نو هغه د اخستلو نه وړاندې د بائع په مقابله كې خصم نه وي.بلكه د اخستلو او شراء نه روسته به خصم وي.

وَهَذَا لِأَنَّ الْمُبَادَلَةَ تَقْتَضِي حُقُوقًا دا ځكه چې مبادله حقوق غواړي.وَهُوَ أَصِيلٌ فِيهَا او وكيل د مبادله په حقوقو كې اصيل وي.فَيَكُونُ خَصْمًا فِيهَا نو ددې حقوق په اړه كې به خصم وي.

**بيان النكتة لمذهب ابى حنيفة رحمه الله**⊛ په دې عبارت سره د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه اصل مسئله باندې يوه نكته بيان كړې شوې ده.نكته داده.چه هركله مؤكل د يوكس مالك جوړولو لپاره قرضه باندې د قبضه كاوه وكيل كړو.او قرضه كې وكيل ته د اصل پور په مثل باندې د مالك كيدلو حق حاصل وي.نود پور مثل وصولول مبادله شوه.او مبادله د بعض حقوقو تقاضه كوي.يعنې د تسليم او تسلم (د وصولولو او سپارلو).او د مبادله وكيل د مبادله په حقوقوكې اصيل وي.يعنې حقوق د مبادله هم ده اړخ ته واپس

کېږي.او هرکله چې د مبادله وکيل د مبادله په حقوقوکې اصيل دې.نودا وکيل به ددې حقوقو په اړه کې خصم هم وي.نو ثابته شوه.چه قرضه باندې د قبضه کاوه وکيل به د قرضدار خصم هم وي.يعنى هغه به د خصومت وکيل هم وي.

قَالَ (وَالْوَكِيلُ بِقَبْضِ الْعَيْنِ لَايَكُونُ وَكِيلًا بِالْخُصُومَةِ) بِالِاتِّفَاقِ او عين شئ باندې د قبضه کاوه وکيل به د خصومت وکيل نه وي. لِأَنَّهُ أَمِينٌ مَحْضٌ،خکه چې هغه صرف امين دې. وَالْقَبْضُ لَيْسَ بِمُبَادَلَةٍ او قبضه مبادله نه ده. فَأَشْبَهَ الرَّسُولَ نو هغه د قاصد مشابه شو. (حَتَّى أَنَّ مَنْ وَكَّلَ وَكِيلًا بِقَبْضِ عَبْدٍ لَهُ ترديې که يوکس څوک سړي د خپل غلام وصولولو وکيل کړو. فَأَقَامَ الَّذِي هُوَ فِي يَدِهِ الْبَيِّنَةَ نو هغه سړي د چا په قبضه کې غلام دې،په دې خبره باندې بينه قائم کړل. أَنَّ الْمُوَكِّلَ بَاعَهُ إِيَّاهُ چې موکل دا غلام دده ( زما) په لاس خرڅ کړې دې. وَقَفَ الْأَمْرُ نودا معامله به موقوف وي. حَتَّى يَحْضُرَ الْغَائِبُ) ترديې چې غائب حاضر شي. وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ په دې کې استحسان دې.

**وكيل قبض الشئ لا يكون وكيل الخصومة**⊛ که يوکس په عين شئ باندې د قبضه کاوه وکيل کړې شو.نودا وکيل به د خصومت وکيل نه وي.دليل دادې.چه په دې صورت کې وکيل صرف امين دې.او په دې صورت کې وکيل د موکل په عين حق باندې قبضه کوي.

**دليله**⊛ خکه به دا قبضه مبادله نه وي.لکه څنګه چې په پورتنئ مسئله کې قبضه عين مبادله نه ده.نودا قبضه به د مبادله د حقوقو مقتضي هم نه وي.او هرکله چې په دې قبضه سره حقوق نه ثابتيږي.نو وکيل به خصم هم نه وي.بلکه په دې مسئله کې به د وکيل حيثيت صرف د امين او قاصد وي.لکه که يوکس بل څوک خپل غلام باندې د قبضه کاوه وکيل کړو.او په غلام چې دکوم کس قبضه ده.هغه په دې خبره باندې بينه قائم کړل.چه موکل خپل دا غلام زما په لاس راخرڅ کړې دې.نودا معامله به د موکل ( چې غائب دې) راتلو پورې موقوف وي.يعنى نه به وکيل ته قبضه ورکولې شي.اونه به د قبضه ور کاوه نه انکار کولې شي. اودا حکم د استحسان دې.

وَالْقِيَاسُ او قياس دادې. أَنْ يُدْفَعَ إِلَى الْوَكِيلِ چې غلام وکيل ته ورکړې شي. لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ قَامَتْ لَا عَلَى خَصْمٍ خکه چې ګواهي قائم شوه.خو په خصم باندې نه. فَلَمْ تُعْتَبَرْ. نودا ګواهي به معتبر نه وي.

**القياس في المسئلة السابقة**⊛ د قياس تقاضه داده.چه غلام به وکيل ته ورکولې شي.او د قابض بينه اړخ ته به توجه نشي ورکولې.وجه داده.چه وکيل بقبض العين، وکيل بالخصومت نه وي.

**دليله**⊛ خکه به دلته کې وکيل خصم نه وي.او هرکله چې وکيل خصم نه دې.نود قابض پيش شوي بينه به د هيڅ خصم او مدعى عليه خلاف نه وي.اوکوم بينه چې خصم باندې قائم نه وي.د هغې اعتبار نه کيږي.نود قابض ددې بينه اعتبار به نه کيږي.او هرکله چې د قابض ددې بينه اعتبار اونکړې شو.نو غلام باندې به د وکيل قبضه نشي منع کولې.بلکه وکيل ته به په غلام باندې قبضه ورکولې شي.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّهُ خَصْمٌ فِي قَصْرِ يَدِهِ چې وکيل د خپلې قبضې لنډولو کې خصم دې لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ فِي الْقَبْضِ خکه چې په قبضه کاوه کې هغه د موکل قائم مقام دې. فَتُقْصَرُ يَدُهُ وإن لم يثبت البيع نو دده قبضه به لنډولې شي.که بيع ثابت نه وي.

**بيان وجه الاستحسان**⊛ وجه د استحسان داده.چه د قابض پيش شوي بينه دوې (دوه) څيزونو باندې دي.[1] يو په دې خبره چې موکل خپل دا غلام قابض باندې خرڅ کړې دې.نود غلام نه دموکل ملك زائل شو.[2] دوهم په دې خبره چې د وکيل قبضه لنډه شوې ده.يعنى وکيل لپاره په دې غلام باندې قبضه کول جائز نه دى. په رومبى شئ کې وکيل بلاشبه د قابض خصم نه دې. خو په دوهم شئ کې وکيل د قابض خصم دې.نو رومبې شئ په کوم کې چې وکيل خصم نه دې.هغې کې به د قابض بينه نه قبليږي.يعنى د قابض به موکل نه ددې



غلام اخستل نه ثابتيږي.او ددې غلام څخه به د موکل ملك نه زائل کيږي.خو دوهم شئ په کوم کې چې خصم دې.هغې کې به د قابض پيش شوي بينه قبلولې شي.او ددې په نتيجه کې به د وکيل قبضه لنډيږي.يعنى وکيل ته به په غلام باندې د قبضې اجازت نه وي.

حَتَّى لَوْحَضَرَ الْبَائِعُ ترديې چې غائب حاضر شو. تُعَادُ الْبَيِّنَةُ عَلَى الْبَيْعِ نو په بيع به دوباره بينه قائمولې شي. فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى أَنَّ الْمُوَكِّلَ عَزَلَهُ عَنْ ذَلِكَ نو داسې شوه.لکه چې قابض په دې خبره باندې بينه قائم کړې وي.چه موکل دا وکيل د قبضه کاوه نه معزول کړې دې. فَإِنَّهَا تُقْبَلُ فِي قَصْرِ يَدِهِ نو بينه به دده قبضه لنډولو کې قبلولې شي. كَذَا هَذَا دغه ډول به په دې مقام کې هم ګواهي قبلولې شي.

**اعادة ثبوت البينة عند حضور الغائب**⊛ ترديې که موکل ( چې غائب وو) حاضر شو.نو قابض لپاره به د موکل په موجودګئ کې بيع باندې دوباره بينه قائمول ضروري وي.چه ما د موکل نه دا غلام اخستې دې.اود بيع ثابتولو لپاره به مخکنى بينه کوم چې د موکل په غيرموجودګئ کې قائم کړې وو.هغه به قبول نه وي.خکه چې وکيل په دې سلسله کې د قابض خصم نه وو.نو په دې سلسله کې به د قابض د اړخه وکيل باندې پيش کړې بينه معتبر نه وي.او هرکله چې مخکنى بينه معتبر نه دى.نو قابض لپاره به د بيع ثابتولو لپاره دوباره بينه پيش کول ضروري وي.

**نظيره**⊛ لکه چې قابض په دې خبره بينه قائم کړل.چه موکل وکيل غلام باندې د قبضه کاوه نه معزول کړې دې.نودا بينه به د وکيل قبضه لنډولو په حق کې قبلولې شي.دغه ډول په ذکر شوې مسئله کې به د قابض بينه صرف د وکيل قبضه لنډولو په حق کې قبول وي.اود بيع ثابتولو په حق کې به قبول نه وي.

### د پورتنئ مثلې پشان د طلاق او عتاق حکم

قَالَ (وَكَذَلِكَ الْعَتَاقُ وَالطَّلَاقُ وَغَيْرُ ذَلِكَ) اوهم داحکم د عتاق او د طلاق وغيره هم دې. وَمَعْنَاهُ ددې مطلب دادې. إِذَا أَقَامَتِ الْمَرْأَةُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الطَّلَاقِ که ښځې په طلاق باندې بينه قائم کړل. وَالْعَبْدُ وَالْأَمَةُ عَلَى الْعَتَاقِ عَلَى الْوَكِيلِ بِنَقْلِهِمْ او غلام او وينځې په عتاق باندې د هغه وکيل په وړاندې کوم چې ددوى اخستلو لپاره راغلې وو. تُقْبَلُ فِي قَصْرِ يَدِهِ نو استحساناً د وکيل قبضه لنډولوکې به دا بينه قبلولې شي. حَتَّى يَحْضُرَ الْغَائِبُ اسْتِحْسَانًا دُونَ الْعِتْقِ وَالطَّلَاقِ ترديې چې غائب حاضر شي.په عتق او طلاق کې به ( بينه) نه قبليږي.

**اتحاد هذا الحكم وحكم العتاق والطلاق**⊛ صاحب د جامع صغير فرمائي.که يوسړي د خپلې ښځې راوستلو لپاره څوك وکيل جوړ کړو.او وې ليګلو.ياچا د خپل غلام يا وينځې راوستلو لپاره څوك وکيل جوړ کړو.او وې ليګلو.نو کله چې وکيل د خپل موکل د ښځې راوستلو اراده اوکړله.نو هغې بينه قائم کړل.چه زما مېړه يعنى دده موکل ماته طلاق راکړې دې.يا غلام يا وينځې بينه قائم کړل.چه زما آقا ( مالك) يعنى دده موکل زه آزاد کړې يم.نو استحساناً دا بينه به د وکيل قبضه لنډولوکې قبلولې شي.يعنى ددې بينه په وجه به وکيل لپاره د موکل په ښځې يا په غلام يا په وينځه باندې قبضه کول جائز نه وي.خودا بينه به د طلاق او عتاق په حق کې قبول نه وي.يعنى ددې بينه په وجه به نه په ښځه باندې طلاق واقع کيږي.اونه به غلام او وينځه آزاديږي.البته که موکل ( چې غائب وو) حاضر شو.نود طلاق او عتاق ثابتولو لپاره به دده په موجودګئ کې دوباره بينه پيش کول ضروري وي. مخکنى بينه به کافى نه وي.

### د قاضى په وړاندې د وکيل بالخصومة پخپل موکل باندې د اقرار حکم

قَالَ (وَإِذَا أَقَرَّ الْوَكِيلُ بِالْخُصُومَةِ عَلَى مُوَكِّلِهِ عِنْدَ الْقَاضِي) وکه وکيل بالخصومت خپل موکل باندې د قاضى په

وړاندې څه اقرار اوکړو. **جَازَ إِقْرَارُهُ عَلَيْهِ** نود وکیل اقرار به موکل باندې جائز وی. **وَلَا يَجُوزُ عِنْدَ غَيْرِ الْقَاضِي) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ اسْتِحْسَانًا ()إِلَّا أَنَّهُ يَخْرُجُ عَنِ الْوِكَالَةِ** اود قاضی نه علاوه په وړاندې د امام ابوحنیفه او امام محمد رحمهما الله په نیز استحساناً جائز نه دې.خو وکیل به د وکالت نه خارجیږی. **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ**:او ابویوسف رحمه الله فرمائی. **يَجُوزُ إِقْرَارُهُ عَلَيْهِ وَإِنْ أَقَرَّ فِي غَيْرِ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ**. چې موکل باندې د وکیل اقرار جائز دې.اګرچه په مجلس د قضاء کې نې اقرار کړې وی. **وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ**:او امام شافعی او امام زفر رحمهما الله فرمائی. **لَا يَجُوزُ فِي الْوَجْهَيْنِ** چې په دواړو صورتونو کې جائز نه دې. **وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَوَّلًا**،او هم دا د ابویوسف رحمه الله رومبې قول دې. **وَهُوَ الْقِيَاسُ** اوهم دا قیاس دې.

**المذاهب في جوازاقرارالوكيل على موكله**۞ ① دطرفینو رحمهما الله په نیز که دخصومت وکیل د خپل موکل خلاف د قاضی په عدالت کې اقرار اوکړو.نود وکیل دا اقرار د موکل خلاف جائز دې.وکیل که د مدعی وی.نود وکیل د اقرار مطلب دا دې. چې مدعی یعنی موکل پخپل مال باندې قبضه کړې ده.اوکه د مدعی علیه وکیل وی.نود اقرار مطلب دا دې.چه وکیل پخپل موکل یعنی مدعی علیه باندې د مال د وجوب اقرار کړې دې.اوکه د قاضی دعدالت نه علاوه بل څه ځائې کې نې اقرار اوکړو.نودا اقرار ناجائز دې.اودا حکم د طرفینو رحمهما الله په نیز استحسان دې.خو وکیل چې کله د غیرقاضی په وړاندې اقرار اوکړی.نو هغه به د وکالت نه اوځی.او وکیل ته به مال نشی ورکولې.یعنی که وکیل د مدعی د اړخه وې.اود غیرقاضی په وړاندې ددې خبرې اقرار اوکړی.چه مدعی په مال باندې قبضه کړې ده.نودا استحساناً اګرچه دا اقرار جائز نه دې.خو وکیل به د وکالت نه خارجیږی.او مدعی علیه باندې د مال ثابتولو په صورت کې به وکیل ته دا مال نشی ورکولې.ځکه چې د وکیل د خیال مطابق مدعی پخپله دعوه کې دروغجن دې.نوهرکله چې د مدعی په اړه کې د وکیل دا خیال دې.نودا دمدعی وکیل څنګه کیدای شی ؟اوهرکله چې مدعی وکیل پاتې نشو.نو ده ته به په مال باندې د قبضه کاوه اجازت هم نه وی. ② حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه د وکیل اقرار ده په موکل باندې جائز دې.اګرچه وکیل د قاضی د مجلس نه په علاوه مجلس کې اقرار اوکړی.یعنی د قاضی مجلس او دغیر قاضی مجلس دواړو صورتونو کې د وکیل اقرار ده د موکل په خلاف جائز نه دې.هم ددې قائل امام مالك، امام احمد او ابن ابی لیلی رحمهم الله دی.هم دا د ابویوسف رحمه الله رومبې قول دې.اوهم دا د قیاس تقاضه هم ده. ③ اود امام زفراوشافعی رحمهما الله په ینز په دواړو صورتونو کې که عند القاضی وی اوکه عند غیرالقاضی وی د وکیل اقرارجائز نه دې

**لِأَنَّهُ مَأْمُورٌ بِالْخُصُومَةِ** ځکه چې دا وکیل په خصومت باندې مامور (او مقرر) دې. **وَهِيَ مُنَازَعَةٌ** او خصومت جګړه ده. **وَالْإِقْرَارُ يُضَادُّهُ** او اقرار د هغې ضد دې. **لِأَنَّهُ مُسَالَمَةٌ**، ځکه چې اقرار مصالحت دې.

**دليل زفر والشافعي** رحمهما الله۞ د قیاس وجه اود امام زفر اود امام شافعی رحمهما الله دلیل دادې.چه د خصومت وکیل د خصومت د جګړې کاوه وکیل دې.او اقرار د جګړې ضد دې.ځکه چې خصومت دداسې کلام نوم دې.کوم چې د دوې (دوه) سرو په منځ کې د مشاجرة اومنازعت (جګړې) په طور واقع وی.او اقرار د داسې کلام نوم دې.کوم چې د مصالحت او موافقت په طور باندې واقع شوې وی.او ددې دواړو متضاد کیدل ښکاره دی.بهرحال اقرار د خصومت ضد دې.او امر بالشئ د شئ په ضد کې نه شاملیږی.نو هغه وکیل کوم چې په خصومت کاوه باندې مامور (او مقرر) کړې شوې دې.هغه ته به صرف د خصومت (جګړې) کاوه اجازت وی.او ددې د ضد یعنی د اقرار کاوه اجازت به نه وی.او هرکله چې وکیل بالخصومت لپاره اقرار کول جائز نه دی.نو دده اقرار به د قاضی په مجلس او د قاضی د مجلس نه په علاوه دواړو کې به جائز او معتبر نه وی.

---

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الدرالمختار(٤٥٩\١٤) ومجمع الگهر(٣٣٤\١٣) والبحر الرائق (١٨١\١٧)



**وَالْأَمْرُ بِالشَّيْءِ لَا يَتَنَاوَلُ ضِدَّهُ** او امر بالشئ د هغې ضد ته نه شاملیږی. **وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ الصُّلْحَ وَالْإِبْرَاءَ** په دې وجه وکیل د صلح کاوه او بری کاوه مالك نه وی. **وَيَصِحُّ إِذَا اسْتَثْنَى الْإِقْرَارَ**، او توکیل صحیح دې.کله نې چې د اقرار استثناء کړې وی.

**الامربالشئ لايشمل ضده**۞ مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه امر بالشئ چونکه ددې ضد ته نه شاملیږی.په دې وجه به وکیل بالخصومت د صلح کاوه او بری کاوه مالك نه وی.یعنی د مدعی وکیل بالخصومت که د مدعی علیه سره صلح کول اوغواړی.یا هغه د پور نه بری کول اوغواړی.نو هغه ته به دا اختیار نه وی.ځکه چې خصومت د صلح او ابراء دواړو ضد دې.په دې طریقه چې صلح لپاره ضروری ده.چه د مدعی وکیل مدعی علیه ته څه حق پریږدی. او پاته وصول کړی.حالانکه وکیل بالخصومت د پوره حق په وصولولو مامور دې.او په ابراء کې د مدعی پوره حق ساقطولې شی.حالانکه وکیل بالخصومت ددې په وصولولو مقرر دې.بهرحال صلح او ابراء چونکه د خصومت ضد دی.په دې وجه وکیل بالخصومت ته به مدعی علیه سره د صلح کاوه اود هغه د بری کاوه اجازت نه وی.

**دليل عدم جواز اقرارالوكيل**۞ د وکیل د اقرار نه جائز کیدلو دلیل دا هم دې.که د توکیل بالخصومت نه د اقرار استثناء اوکړې شی.نو توکیل بالخصومت به صحیح وی.مثلاً موکل اووئیل.چه ته ما د خصومت وکیل کړې.په دې شرط چې ته به په ما باندې اقرار نه کوې.نو ددې استثناء باوجود توکیل بالخصومت صحیح دې.نود اقرار استثناء کاوه باوجود د توکیل بالخصومت صحیح کیدل ددې خبرې دلیل دې.چه توکیل بالخصومت اقرار ته ګډ نه دې.او اقرار د توکیل بالخصومت د حقوقو ځنې نه دې.نو اقرار اګرچه د توکیل بالخصومت د حقوقو ځنې وی.او توکیل بالخصومت اقرار ته نه شاملیږی. نود اقرار استثناء به صحیح نه وی.لکه څنګه چې د توکیل بالخصومت نه د انکار استثناء صحیح نه ده.یعنی که یوکس اووئیل.چه ته ما په دې شرط د خصومت وکیل کړې وې.چه ته به په ما باندې انکار نه کوې.یعنی ستا انکار به په ما باندې جائز نه وی.نودا توکیل به باطل وی.ځکه چې انکار د توکیل بالخصومت د حقوقو ځنې دې.او توکیل بالخصومت انکار ته ګډ دې.

**وَكَذَا الْوَكَالَةُ بِالْجَوَابِ مُطْلَقًا** دغه ډول نې که د مطلق ځواب وکیل کړې وی. **يَتَقَيَّدُ بِجَوَابٍ هُوَ خُصُومَةٌ** نودا توکیل به ځواب یعنی خصومت سره مقید وی. **لِجَرَيَانِ الْعَادَةِ بِذٰلِكَ** ځکه چې دې باندې عادت جاری دې. **وَلِهٰذَا يُخْتَارُ فِيهَا الْأَهْدَى** په دې وجه به دې کې داسې سړې اختیاروی.څوك چې په خصومت کې هوښیار (او چالاك) وی. **فَالْأَهْدَى** بیا دده نه روسته چې څوك هوښیار وی.

**تائيد مذهب زفروالشافعي** رحمهما الله۞ د امام زفر او امام شافعی رحمهما الله د مذهب تائید په دې سره کیږی که یوکس څوك سړې مطلق د ځواب ور کاوه وکیل کړو.نو توکیل به خصومت یعنی انکار سره مقید وی.یعنی مطلق ځواب اګرچه اقرار او انکار دواړو ته ګډ دې.خود عرف او عادت جاری کیدلو په وجه به دا مطلق وکالت انکار سره مقید وی.یعنی په دې صورت کې به وکیل بالخصومت لپاره صرف انکار کول جائز وی.اود اقرار اجازت به نه وی.په دې وجه وکیل بالخصومت لپاره به داسې سړې اختیارولې شی.کوم چې په جګړه او خصومت کولو کې هوښیار وی.دلته د هوښیار سړی انتخاب کول ددې خبرې دلیل دې.چه توکیل مطلقه به خصومت او انکار سره مقید وی.ګنې د اقرار کاوه لپاره د هیڅ هوښیار سړی اړتیا نه راپیښیږی.

مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه دامسئله د امام زفر رحمه الله اود نورو احنافو رحمهم الله په منځ کې مختلف فیه ده.نودا مسئله په استثناء کې پیش کول صحیح نه دی.

**وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ** او وجه د استحسان داده. **أَنَّ التَّوْكِيلَ صَحِيحٌ قَطْعًا** چې توکیل قطعاً صحیح دې. **وَصِحَّتُهُ بِتَنَاوُلِهِ مَا يَمْلِكُهُ قَطْعًا** او ددې صحت هغه ته ګډ دې.د کوم چې موکل قطعاً مالك دې. **وَذٰلِكَ مُطْلَقُ الْجَوَابِ دُونَ أَحَدِهِمَا**

عَيْنًا. او هغه مطلق خواب دې نه دا چې په دې دواړو کې کوم يو معين ته. وَطَرِيقُ الْمَجَازِ مَوْجُودٌ عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او طريقه باندې د مجاز طريقه موجود ده. چه موږ به دا انشاء الله بيان کړو. فَيُصْرَفُ إِلَيْهِ تَحَرِّيًا لِلصِّحَّةِ قَطْعًا نو قطعاً د صحت د طلب لپاره به وکالت هم دې اړخ ته ګرځولې شي.

دليل الطرفين رحمهما الله: وجه د استحسان داده. چه توکيل چې توکيل بالخصومت بالاجماع قطعي طور باندې صحيح او جائز دې او توکيل بالخصومت ځکه صحيح دې. چه توکيل هرهغه شي ته کيږي. د کوم چې بلاشبه موکل مالك دې. يعني که موکل ته د کوم فعل اختيار نه وي. نود هغه کار لپاره وکالت جائز نه وي. نو دلته په دې وکالت کې هر داسې فعل داخل دې. د کوم چې موکل ته اجازت دې. او موکل ته صرف د خواب اجازت دې. يعنى موکل اقرار هم کولې شي. اوانکار هم کولې شي. متعين طور باندې د اقرار يا انکار اجازت نه دې. بلکه د هر يو اجازت دې. بهرحال هرکله چې موکل ته د اقرار او انکار دواړو اجازت دې. نو وکيل بالخصومت ته به هم د موکل نائب کيدلو په وجه د اقرار او انکار د هر يو اختيار حاصل وي. او توکيل بالخصومت نه مطلقاً خواب مراد اخستل جائز دی. اود خصومت او مطلق خواب په منځ کې طريق د مجاز هم موجود ده. په دې طريقه چې خصومت سبب دې، د خواب. او سبب ونيل او مسبب مراد اخستل د مجاز د طريقو څخه يوه طريقه ده. دا به روسته بيان کړو. نودا توکيل بالخصومت به مجازاً د مطلق خواب توکيل اړخ ته ګرځولې شي. چه د موکل کلام قطعي طور سره صحيح او جائز شي.

## د موکل د اقرار د استثناء حکم

وَلَوِ اسْتَثْنَى الْإِقْرَارَ او که موکل د اقرار استثناء اوکړله. فَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنَّهُ لَا يَصِحُّ نود ابويوسف رحمه الله په نيز دا استثناء صحيح نه ده. لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُهُ. ځکه چې موکل د استثناء مالك نه دې. وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام محمد رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ يَصِحُّ چې د اقرار استثناء صحيح ده. لِأَنَّ لِلتَّنْصِيصِ زِيَادَةَ دَلَالَةٍ عَلَى مِلْكِهِ إِيَّاهُ. ځکه چې د تصريح کاوه په وجه په دې خبره زيات دلالت اوشو. چه موکل د انکار مالك دې.

تشريح: وړاندې مرغيناني رحمه الله د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله د دليل لاندې د استثناء په طور فرمائيلي وو. چه د توکيل بالخصومت نه د اقرار استثناء صحيح ده. اود اقرار استثناء صحيح کيدل ددې خبرې دليل دې. چه اقرار د توکيل د حقوقو څخه نه دې. او توکيل بالخصومت اقرار ته ګډ نه دې. او هرکله چې توکيل بالخصومت اقرار ته ګډ نه دې. نود وکيل خپل موکل باندې اقرار کول به نه په مجلس د قاضي کې معتبر وي. او نه به د قاضي دمجلس نه په علاوه کې معتبر وي.

هم ددې استثناء په خواب کې فرمائي. چه د اقرار استثناء صحيح کيدل موږ نه منو. بلکه حقيقت دادې. چه د اقرار استثناء صحيح نه ده. لکه څنګه چې دامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی. اود اقرار استثناء نه صحيح کيدل په دې وجه دی. چه موکل ددې مالك نه دې. او موکل د اقرار د استثناء مالك په دې وجه نه دې. که دې د اقرار د استثناء مالك جوړ کړې شي. نو په دې سره به دا لازميږي. چه موکل صرف د انکار مالك وي. يعنى موکل انکار اوکړي. که هغه په حق وي. اوکه په باطله وي. حالانکه دا خبره شرعاً جائز نه ده. بهرحال هرکله چې د امام ابويوسف رحمه الله په قول د توکيل بالخصومت نه د اقرار استثناء کول صحيح نه دی. نو دده څخه به استثناء کول هم صحيح نه وي. که دا خبره اومنلې شي. چه د اقرار استثناء صحيح ده. لکه څنګه چې د امام محمد رحمه الله نه روايت دې. نو ددې مطلب دا بالکل نه دې. چه اقرار د توکل د حقوقو څخه نه دې. بلکه د موکل د اقرار د استثناء صراحت کول، ددې خبرې واضح دليل دې. چه موکل د انکار مالك دې. د دې تفصيل دادې. چه د موکل انکار کول ځکه جائز دې. ډيره ممکن ده. چه د موکل خصم په حق باندې وي. خوکله چې موکل د اقرار د استثناء صراحت اوفرمائيلو. نو په دې سره دا خبره ثابته شوه. چه موکل ته پوره پوره يقين دې. چه دده خصم باطل باندې دی. نو هرکله چې د خصم په باطل باندې د کيدلو يقين دې. نو موکل لپاره انکار متعين شو. او کله چې موکل لپاره د خصم انکار متعين شو. نو دده لپاره د اقرار استثناء



کول او صرف د انکار وکيل کول به صحيح او جائز وي.

وَعِنْدَ الْإِطْلَاقِ يُحْمَلُ عَلَى الْأَوْلَى د اطلاق په وخت اولى باندې محمول کولې شي.

تشريح: مرغيناني رحمه الله فرمائي. که توکيل بالخصومت مطلق وي. يعنى د اقرار استثناء نه وي کړې شوې. نودا توکيل به په هغه محمول کولې شي. کوم چې د مسلمان حال سره مناسب وي. اود مسلمان حال سره مناسب مطلق خواب دې. يعنى وکيل ته ددې خبرې اختيار دې. چه هغه اقرار اوکړي. يا انکار اوکړي. او جګړه او صرف انکار کول د مسلمان حال سره مناسب نه دی. ددې وجه داده. چه مطلق خواب په ټولو حالاتو کې جائز دې. او جګړه او صرف انکار کول حرام دی. او توکيل بالحرام هم حرام دې. نود مسلمان د ښکاره حال رعايت کاوه سره به دا توکيل مجاز يعنى خواب باندې محمول کولې شي. بهرحال دا خبره ثابته شوه. چه د توکيل بالخصومت مطلق کيدلو په صورت کې به وکيل د مطلق خواب مالك وي. اود اقرار او انکار دواړو به اختيار وي.

وَعَنْهُ أَنَّهُ فَصَلَ بَيْنَ الطَّالِبِ وَالْمَطْلُوبِ اود امام محمد رحمه الله نه دا روايت هم دې. چه هغوی د طالب او مطلوب په منځ کې توپير کړې دې. وَلَمْ يُصَحِّحْهُ فِي الثَّانِي او په ثاني (مطلوب) کې ئې استثناء صحيح ګرځولې ده. لِكَوْنِهِ مَجْبُورًا عَلَيْهِ ځکه چې مطلوب په ترك د انکار باندې مجوره وي. وَيُخَيَّرُ الطَّالِبُ فِيهِ او طالب په دې کې اختيار مند دې.

تشريح: مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه امام محمد رحمه الله نه نقل دی. چه دوی په مدعي او مدعى عليه کې توپير کړې دې. يعنى که توکيل بالخصومت د مدعي د اړخه وي. نو مدعي لپاره د انکار استثناء کول صحيح دی. ځکه چې مدعي ته په اصل خصومت کې اختيار دې. هغه د مدعى عليه د خبرې انکار هم کولې شي. اود هغې اقرار هم کولې شي. نو هرکله چې مدعي ته د دواړو خبرو اختيار دې. نو دده په حق کې به د اقرار استثناء کول ګټور وي. يعنى هغه خپل وکيل ته ونيلې شي. چه تاته د اقرار اختيار نشته. اوکه د مدعى عليه د اړخه توکيل بالخصومت وي. نو مدعى عليه لپاره د اقرار استثناء کول صحيح نه دی. ځکه چې د اقرار استثناء کول د مدعى عليه په حق کې مفيد نه دی. ځکه مدعي چې کومه دعوه کړې ده. هغه به دې د بينه په ذريعه ثابتوي. يا به د مدعى عليه نه د يمين مطالبه کوي. او مدعى عليه به په اقرار کاوه باندې مجبوره کوي. خو چونکه په ايمان او قسمونو کې نيابت نه جاري کيږي. ځکه به وکيل يمين خپل موکل باندې محول (حواله) کوي. اوهر کله چې يمين موکل باندې محول شو. نو موکل اقرار باندې مجبوره کيدلې شي. او هرکله چې موکل اقرار باندې مجبوره شو. نود هغه په حق کې به د اقرار استثناء صحيح نه وي.

فَبَعْدَ ذَلِكَ يَقُولُ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: بيا ددې نه روسته امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. إِنَّ الْوَكِيلَ قَائِمٌ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ، چې وکيل د موکل قائم مقام وي. وَإِقْرَارُهُ لَا يَخْتَصُّ بِمَجْلِسِ الْقَضَاءِ اود موکل اقرار د قضاء مجلس سره خاص نه وي. فَكَذَا إِقْرَارُ نَائِبِهِ نو دغه ډول به د هغه د نائب اقرار (هم خاص نه وي).

تشريح: سره اختلاف اړخ ته رجوع کاوه کې مصنف د هدايه رحمه الله فرمائي. چه هرکله دا خبره ثابته شوه. چه توکيل بالخصومت سره مطلق خواب مراد کيدلې شي. يعنى وکيل بالخصومت لپاره خپل موکل باندې اقرار کول هم جائز دې. نو حضرت امام ابويوسف رحمه الله اوفرمائيل. چه دا اقرار د قاضي په مجلس اود قاضي د مجلس نه په علاوه دواړو کې برابر دې. يعنى وکيل بالخصومت پخپل موکل باندې په مجلس د قاضي کې اقرار اوکړي. يا د قاضي د مجلس نه په علاوه کې اقرار اوکړي. دواړو صورتونو کې جائز دې. ځکه چې وکيل دخپل موکل قائم مقام وي. نو موکل چې د کومو څيزونو مالك دې. وکيل به هم دهغه څيزونو مالك وي. اود موکل اقرار د قاضي مجلس سره نه خاص کيږي. بلکه د قاضي مجلس اود قاضي د مجلس نه علاوه دواړو کې به دده اقرار معتبر وي. نو دده د نائب يعنى د وکيل اقرار به هم د قاضي مجلس سره مختص نه وي. بلکه

دوارو ځايونو کې به معتبر وي.پاتې شوه دا خبره چې د موکل اقرار د قاضی مجلس سره ولې نه مختص کیږي ؟ نو ددې ځواب دادې.چه د موکل اقرار بنفسه موجب وي.اود قاضی مجلس سره هغه شئ مختص وي.کوم چې بنفسه موجب نه وي.بلکه بینه یا انکار عن الیمین سره ملاؤ شي.نو موجب کیږي.

> وَهُمَا يَقُولَانِ:او طرفين رحمهما الله فرمائي.إِنَّ التَّوْكِيلَ يَتَنَاوَلُ جَوَابًا يُسَمَّى خُصُومَةً حَقِيقَةً چې توکیل بالخصومت داسې ځواب ته ګډ دې.کوم چې په حقیقت کې خصومت وي.أَوْ مَجَازًا.یا مجازاً خصومت وي.

**تشريح**:او طرفين رحمهما الله فرمائي.چه مجلس د قاضی اوغیر مجلس د قاضی کې توپیر دې.یعنی په مجلس د قاضی کې د وکیل خپل موکل باندې اقرار معتبر دې.اود قاضی دمجلس نه په علاوه مجلس کې معتبر نه دې او ددې توپیر دلیل دادې.چه وړاندې تیر شوی دی.چه توکیل بالخصومت به مطلق ځواب اړخ ته راجع کیږي.او مطلق ځواب د خپل عموم په وجه حقیقت یعنی خصومت ( انکار) ته هم ګډ وي.او مجاز یعنی اقرار ته به هم ګډ وي.

> وَالْإِقْرَارُ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ خُصُومَةٌ مَجَازًا،او په مجلس د قاضی کې اقرار کول مجازاً خصومت دې.إِمَّا لِأَنَّهُ خَرَجَ فِي مُقَابَلَةِ الْخُصُومَةِ،یا په دې وجه چې اقرار د خصومت په مقابله کې واقع شوې دې.أَوْ لِأَنَّهُ سَبَبٌ لَهُ،یا په دې وجه چې خصومت د اقرار سبب دې.لِأَنَّ الظَّاهِرَ إِتْيَانُهُ بِالْمُسْتَحَقِّ ځکه چې ښکاره هم دا ده.چه د مستحق د مطالبې په وخت مستحق سره ځواب ورکړې شي.وَهُوَ الْجَوَابُ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ،اودا مستحق هم هغه ځواب دې.کوم چې د قاضی په مجلس کې دې.فَيَخْتَصُّ بِهِ نو د قاضی مجلس سره به د خصومت ځواب مختص وي.

**تشريح**: پاتې شوه دا خبره چې د قاضی په مجلس کې اقرار مجازاً خصومت څنګه کیدای شي.نو ددې ځواب دا دې.چه یا خوځکه چې اقرار د خصومت په مقابله کې واقع شوې دې.یعنی د خصومت او اقرار په منځ کې تقابل دې.نو دلته کې احدالمتقابلین یعنی خصومت وئیلې شوې دې.او آخر یعنی اقرار مراد اخستې شوې دې.اود احدالمتقابلین اطلاق په آخر باندې مجازاً جائز دې.لکه د الله تعالی قول ﴿فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ کې د جزاء،،عدوان،،نوم مجازاً عدوان ایخودلې شوې دې.او په ﴿جَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِثْلُهَا﴾ کې د ﴿جَزَاءُ سَيِّئَةٍ﴾ نوم مجازاً سیئة ایخودلې شوې دې.او یا اقرار مجازاً خصومت ځکه دې.چه خصومت د اقرار سبب دې.نو سبب ( اقرار) د سبب ( خصومت) نوم سره موسوم شوې دې.بهرحال اقرار مجازاً خصومت دې.البته اقرار مجلس د قاضی سره مختص دې.یعنی که د قاضی مجلس کې وکیل پخپل موکل باندې اقرار اوکړو.نودا اقرار به معتبر وي.اوکه د قاضی د مجلس نه په علاوه کې ئې اقرار اوکړو.نو معتبر به نه وي.ځکه چې ښکاره هم داده.چه کله مستحق مطالبه اوکړله.نوهم دغه ډول ځواب به ورکولې شي.د کوم چې دې مستحق دې.او دا هم هغه ځواب دې.کوم چې د قاضی په مجلس کې دې.نودا ځواب یعنی اقرار به د قاضی مجلس سره مختص وي.

> لَكِنْ إِذَا أُقِيمَتِ الْبَيِّنَةُ عَلَى إِقْرَارِهِ فِي غَيْرِ مَجْلِسِ الْقَضَاءِ خوکه د قاضی د مجلس نه علاوه کې د وکیل په اقرار باندې بینه قائم کړې شو.يَخْرُجُ مِنَ الْوَكَالَةِ نو وکیل به د وکالت نه خارجیږي.حَتَّى لَا يُؤْمَرَ بِدَفْعِ الْمَالِ إِلَيْهِ تردې چې ده له به دمال ور کاوه حکم نشي ورکولې.لِأَنَّهُ صَارَ مُنَاقِضًا ځکه چې هغه مناقض شو.

**تشريح**: خوکه په دې خبره باندې بینه قائم کړې شو.چه وکیل د قاضی دمجلس نه په علاوه کې اقرار کړې دې.نو وکیل به د وکالت نه خارجولې شي.او هغه له به د مال ور کاوه حکم نشي ورکولې.ځکه چې د مطلق ځواب وکیل پاتې کیدل ممکن نشو.په دې طریقه چې وکیل د انکار مالك خو کیدای نشي.ځکه چې دانکار کاوه په صورت کې به د وکیل په کلام کې تناقض پیدا کیږي.چه مخکې ئې اقرار کړې وو.او اوس انکار کوي.نود قاضی د مجلس نه په علاوه کې د اقرار نه روسته که دې وکیل پاتې اوساتلې شو.نو هغه به د ځواب مقید یعنی صرف د اقرار وکیل وي.حالانکه موکل هغه لره د ځواب مقید ( اقرار) وکیل کړې نه



وو.بلکه د ځواب مطلق وکیل کړې ئې وو.ګویا وکیل د خپل موکل د حکم خلاف شو.اود موکل مخالفت کاوه سره وکالت ختمیږي.ځکه به دا وکیل د وکالت نه خارجولې شي.او هرکله چې د وکالت نه خارج شو.نود موکل مال به ده ته نشي ورکولې.

> وَصَارَ كَالْأَبِ أَوِ الْوَصِيِّ إِذَا أَقَرَّ فِي مَجْلِسِ الْقَضَاءِ لکه پلار، یا وصی کله چې د قاضی په مجلس کې اقرار اوکړي.لَا يَصِحُّ نودا اقرار به صحیح نه وي.وَلَا يَدْفَعُ الْمَالَ إِلَيْهِمَا او ده ته به مال نشي ورکولې.

**تشريح**:ددې اقرار کونکی د وکیل مثال داسې دې.لکه چې پلار یا وصی د قاضی په مجلس کې اقرار کړې وي.نودا صحیح نه دې.او ده ته به د صغیر مال نشي ورکولې .مثلاً پلار یا وصی د صغیر په واسطه د څه شئ دعوه اوکړله.او مدعی علیه ددې انکار اوکړو.بیا پلار یا وصی د مدعی علیه تصدیق اوکړو.نودا د صغیر په حق کې صحیح نه دې.بیا که د صغیر لپاره مال ثابت شو.نوهغه مال به دده پلار یا وصی ته نشي ورکولې.ځکه چې دده په نیز دده مال اخستل باطل دی.او اقرار ځکه صحیح نه دې.چه پلار یا وصی ته دا ولایت د شفقت په نظر سره حاصل دې.حالانکه د صغیر په مقابله کې د مدعی علیه تصدیق کولوکې هیڅ شفقت نشته.دغه ډول که وکیل د قاضی د مجلس نه په علاوه کې موکل باندې اقرار اوکړو.نود وکالت څخه به خارجولې شي.ددې نه روسته که د موکل مال په مدعی علیه باندې ثابت شو.نو وکیل دا مال نشي وصولولې.ځکه چې هغه اقرار کړې دې.چه موکل دا مال وصول کړې دې.یا د موکل حق نه دې.او هرکله چې داسې ده.نو وکیل له به دا مال څنګه ورکولې شي.

## د يو سړي كفيل د بل سړي لپاره د قبضې وكيل كيدولو حكم

> قَالَ (وَمَنْ كَفَلَ بِمَالٍ عَنْ رَجُلٍ اوکه څوك د یوسړي د اړخه د مال کفیل شو.فَوَكَّلَهُ صَاحِبُ الْمَالِ بِقَبْضِهِ عَنِ الْغَرِيمِ بیا صاحب مال کفیل د مدیون نه په مال قبضه کاوه باندې وکیل کړو.لَمْ يَكُنْ وَكِيلًا فِي ذَلِكَ أَبَدًا) نودې به په دې اړه کې کله هم وکیل نه وي.لِأَنَّ الْوَكِيلَ مَنْ يَعْمَلُ لِغَيْرِهِ،ځکه وکیل هغه وي.کوم چې د غیر لپاره کار اوکړي.

**صورة المسئلة**۞ یوسړې مثلاً خالد د دوهم سړي مثلاً د حامد ( مدیون) د اړخه د مال کفیل شو.بیا قرضخواه یعنی مکفول له کفیل د خپل اړخه د مدیون یعنی حامد نه د پور وصولولو وکیل کړو.نو کفیل به مدیون نه د پور وصولولو په سلسله کې کله هم وکیل نه جوړیږي. یعنی کفیل به نه د بری کیدلو نه وروستو وکیل وي.اونه به د بری کیدلو نه وړاندې وکیل وي.

**خلاصة البحث**۞ چې کفیل د کفالت نه بری شو.نو بیا به هم د قرضخواه وکیل نه وي.اوکه بری نشو.نو بیا به هم وکیل نه وي.تردې که دا مال د کفیل په قبضه کې هلاك شو.نو په موکل به هلاك نه وي.بلکه ددې ذمه دار به دا کفیل وي.څوك چې کفیل جوړکړې شوې دې.کفیل به د براءت نه روسته ځکه وکیل نه وي.چه کوم وخت کفیل وکیل جوړکړې شوې دې.هغه وخت وکالت صحیح نه وو.او هغه وخت کفالت ځکه صحیح نه وو.چه وکیل هغه وي.چه د بل لپاره کارکوي.حالانکه کفیل د خپلې ذمې بری کاوه لپاره پخپله خپل ځان لپاره کار کوي.نود کفیل ددې مانع په وجه وکیل جوړیدل صحیح نه دې.البته د کفیل د کفاله نه بری کیدلو نه روسته مانع د وکالت اګرچه پاته پاتې نشو.خو کوم عقد چې ابتداء غیر صحیح منعقد شي.هغه واپس صحیح کیدلو باندې نه بدلیږي.لکه مثلاً یو سړې د یو غائب سړي لپاره کفیل شو.بیا کله چې دې غائب سړي ته ددې خبر ملاؤ شو.نو هغه ددې کفالت اجازت ورکړو.نودا کفاله به صحیح نه وي.ځکه چې د مکفول له یعنی د غائب سړي د نه قبلولو په وجه ابتداء دا کفاله صحیح نه وه.نو روسته د اجازت ور کاوه په وجه به واپس صحیح کیدلو باندې نه بدلیږي.دغه ډول د کفیل وکیل جوړیدل په ابتداء کې صحیح نه وو.نو د کفیل بری کیدلو نه روسته به دا وکالت واپس صحیح کیدلو باندې نه بدلیږي.

وَلَوْ صَحَّحْنَاهَا او که موږ مذکوره وکالت صحیح اومنو. صَارَ عَامِلًا لِنَفْسِهِ فِي إِبْرَاءِ ذِمَّتِهِ نو دې به د خپلې ذمې برې کاوه لپاره خپل ځان لپاره کار کونکې وي. فَانْعَدَمَ الرُّكْنُ نود توکیل رکن موجود نشو.

**تشریح:** اود کفالت نه د برې کیدلو نه وړاندې د کفیل وکیل کیدل ځکه جائز نه دي. چه وکیل هغه وي. ځوك چې د بل یعنی موکل لپاره کار کوي. او کفیل د خپلې ذمې برې کیدلو لپاره خپل ځان لپاره کار کوي. نو که د کفیل وکیل جوړول صحیح وي. نو وکیل به خپل ځان لپاره کار کوي. او هرکله چې وکیل خپل ځان لپاره کار اوکړو. نود وکالت رکن یعنی د بل لپاره کار کول معدوم شو. او هرکله چې د وکالت رکن معدوم شو. نو د سره عقد وکالت باطل شو. او هرکله چې په دې صورت کې عقد وکالت باطل شو. نوده کفیل وکیل جوړیدل به هم صحیح نه وي.

وَلِأَنَّ قَبُولَ قَوْلِهِ مُلَازِمٌ لِلْوَكَالَةِ او ځکه چې د وکیل قول قبلیدل وکالت لپاره لازم دي. لِكَوْنِهِ أَمِينًا ځکه چې هغه امین وي. وَلَوْ صَحَّحْنَاهَا او که موږ وکالت صحیح اوګرځوو. لَا يُقْبَلُ نود هغه قول به قبول نه وي. لِكَوْنِهِ مُبَرِّئًا نَفْسَهُ ځکه چې هغه به د خپل ذات برې کونکې وي. فَيَنْعَدِمُ بِانْعِدَامِ لَازِمِهِ نو ددې د لازم معدوم کیدلو سره به توکیل هم معدوم کیږي.

**تشریح: الدلیل الثانی لعدم توکیل الوکیل المذکور⊛** وکالت لپاره د وکیل قول قبلول لازمیږي. یعنی د وکالت صحیح کیدلو نه روسته دا ضروري ده. چه د وکیل قول قبول کړې شي. او ددې وجه داده. چه وکیل امین وي. او د اختلاف په صورت کې د امین قول معتبر وي. نو ثابته شوه. چه د وکیل قول قبلول وکالت لپاره لازم دي. اوس که دلته کې وکالت صحیح اومنلې شي. یعنی د کفیل وکیل کیدل صحیح وي. نود هغه قول به قبول نه وي. مثلاً هغه اوونیل. چه ما وصول کړو. او مکفول له مې ورکړو. نودا قول به نه قبلیږي. ځکه چې کفیل به دخپل ذات برې کونکې وي. یعنی هغه په دې ونیلو سره خپل ذات برې کول غواړي. چه ما وصول کړې دې. او مکفول له ته مې ورکړې دې. نو کفیل چونکه پخپل قول کې متهم کیداې شي. په دې وجه به د هغه دا قول نه قبلیږي. او هرکله چې د کفیل قول قبول نشو. نود لازم یعنی د وکیل قول قبلیدل منتفي شو. اود لازم انتفاء د ملزوم انتفاء ته مستلزم ده. په دې وجه وکالت چې ملزوم دې. هغه به هم منتفي کیږي. او هرکله چې لازم یعنی د وکیل قول قبلیدل معدوم دی. نو ملزوم یعنی وکالت به هم معدوم وي. او هرکله چې وکالت معدوم شو. نود مذکوره کفیل وکیل کیدل به هم صحیح نه وي.

وَهُوَ نَظِيرُ عَبْدٍ مَدْيُونٍ أَعْتَقَهُ مَوْلَاهُ اودا مثال د عبد ماذون مدیون دې. کوم چې دده آقا آزاد کړې وي. حَتَّى ضَمِنَ قِيمَتَهُ لِلْغُرَمَاءِ تردې چې آقا د قرضخواهانو لپاره دغلام د قیمت ضامن وي. وَيُطَالِبُ الْعَبْدُ بِجَمِيعِ الدَّيْنِ اود غلام ځخه به د پوره دین مطالبه کوي. فَلَوْ وَكَّلَهُ الطَّالِبُ بِقَبْضِ الْمَالِ عَنِ الْعَبْدِ نو که قرضخواهانو آقا د غلام نه د مال وصولولو وکیل کړو. كَانَ بَاطِلًا لِمَا بَيَّنَّاهُ نود ذکر شوې دلیل په وجه به دا توکیل باطل وي.

**تشریح:** د مذکوره وکالت د بطلان مثال دا مسئله ده. چه یو غلام چې ده ته دده مولا د تجارت اجازت ورکړې وو. د خلګو قرضدار دې. نو مولا دغه غلام آزاد کړو. نودا مولا به د غلام د قیمت په اندازه قرضخواهانو لپاره ضامن وي. که مولا توانګر وي. اوکه فقیر وي. او مولا به د غلام نه د پوره پور مطالبه کوي. که پور خواهانو مولا د غلام نه د پور وصولولو بانعې وکیل کړو. نودا توکیل به باطل وي. او مولا به وکیل نه وي. ځکه وکیل هغه وي. ځوك چې د بل لپاره کار کوي. او دلته کې مولا چونکه د غلام د قیمت په اندازه قرضخواهانو لپاره ضامن دې. په دې وجه به هغه د قیمت په مقدار خپل ځان لپاره عمل کونکې وي. یعنی د قیمت په مقدار کې به د غلام نه د مولا مطالبه د خپل ځان برې کاوه لپاره وي. اود مولا عمل بلاشبه د مولا لپاره دې. نو هرکله چې د مولا دا عمل پخپله د مولا لپاره دې. نود توکیل رکن (یعنی بل لپاره عمل کول) معدوم شو. او هرکله چې د توکیل رکن معدوم شو. نو توکیل به باطل وي. او هرکله چې توکیل باطل شو. نود



مولا مذکوره غلام نه د پور وصولولو وکیل کیدل به هم باطل وي.

## د قرضدارې د وکیل د وکالت تصدیق کول

قَالَ (وَمَنِ ادَّعَى) که یو سړې دعوه اوکړله. أَنَّهُ وَكِيلُ الْغَائِبِ فِي قَبْضِ دَيْنِهِ چې زه د فلاني غائب د اړخه د هغه د پور وصولولو وکیل یم. فَصَدَّقَهُ الْغَرِيمُ نو قرضدار د هغه تصدیق اوکړو. أُمِرَ بِتَسْلِيمِ الدَّيْنِ إِلَيْهِ نو قرضدار ته به حکم ورکولې شي. چه قرضه دې وکیل ته اوسپاري. لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ عَلَى نَفْسِهِ ځکه چې دا پخپل ذات باندې اقرار دې. لِأَنَّ مَا يَقْضِيهِ خَالِصُ مَالِهِ ځکه چې کوم څه دې اداکوي خالص دده مال دې.

**صورة المسئلة⊛** یو سړې مثلاً شاهد دعوه اوکړله. چه زه د فلاني غائب مثلاً د حامد د اړخه د هغه د پور وصولولو وکیل یم. نو قرضدار د وکالت ددې مدعی د قول تصدیق اوکړو. نو دې قرضدار ته به حکم ورکولې شي. چه مذکوره قرضه د وکالت دې مدعی ته ورکړي. ځکه چې قرضدار کوم څه اداکوي. هغه دده ذاتي مال دې. ځکه چې دیون بامثالها اداء کولې شي. باعیانها نشي اداکولې. نو هرکله چې هغه دده ذاتي مال دې. نو دده د وکالت د مدعی تصدیق کول، ګویا خپل ذات باندې هغه لپاره د مال اقرار کول دي. او کوم سړې چې پخپل ذات باندې د کوم سړي لپاره دڅه شي اقرار کوي. نو هغه ته حکم ورکولې شي. چه هغه مقربه شي مقرله ته اوسپاري. نو دې قرضدار ته به هم حکم ورکولې شي. چه قرضه د وکالت مدعی ته اوسپاري.

(فَإِنْ حَضَرَ الْغَائِبُ) بیا که غائب موکل حاضر شو. فَصَدَّقَهُ وَإِلَّا دَفَعَ إِلَيْهِ الْغَرِيمُ الدَّيْنَ ثَانِيًا) اود وکیل د قول تصدیق نې اوکړو. (نو ډیره ښه ده) ګنې قرضدار به هغه ته دوباره قرضه ادا کوي. لِأَنَّهُ لَمْ يَثْبُتِ الِاسْتِيفَاءُ حَيْثُ أَنْكَرَ الْوَكَالَةَ، ځکه چې هرکله هغه د وکالت نه انکار اوکړو. وَالْقَوْلُ فِي ذَلِكَ قَوْلُهُ مَعَ يَمِينِهِ نود هغه وصولول ثابت نشو. او په دې اړه کې د موکل قول به مع الیمین قبلیږي. فَيَفْسُدُ الْأَدَاءُ نود قرضدار اداکول به فاسدیږي.

**تشریح:** بیا که غائب یعنی قرضخواه حاضر شو. اود وکیل د قول تصدیق نې اوکړو. او دا نې اوونیل. چه آؤ دا سړې زما وکیل دې. نو صحیح ده. اوکه قرضخواه د وکیل د قول تصدیق اونکړو. نو قرضدار به قرضخواه ته دوباره قرضه ادا کوي. ځکه چې هرکله قرضخواه د وکالت انکار اوکړو. نود پور خواه حق وصولول ثابت نشو. اود وکالت په انکار کې د قرضخواه قول مع الیمین معتبر وي. نود قرضخواه قول به معتبر وي. او هرکله چې د قرضواه قول معتبر دې. نود وکالت مدعی ته قرضه ادا کاوه سره به د قرضخواه د حق وصولول نه ثابتیږي. او هرکله چې د قرضخواه د حق وصولول ثابت نشو. نود مدعی وکالت اړخ ته اداکول به هم فاسد وي. او قرضدار باندې به قرضه اداکول واجب وي. او هرکله چې قرضدار باندې قرضه اداکول واجب دي. نو په ده به واجب وي. چه قرضخواه ته دوباره قرضه اداکړي.

(وَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْوَكِيلِ إِنْ كَانَ بَاقِيًا فِي يَدِهِ) او که مال د وکیل په قبضه کې پاته وي. نو قرضدار به هغه مال د وکیل نه واپس اخلي. لِأَنَّ غَرَضَهُ مِنَ الدَّفْعِ بَرَاءَةُ ذِمَّتِهِ ځکه چې د قرضدار غرض وکیل ته مال ور کاوه سره خپله ذمه برې کول وو. وَلَمْ تَحْصُلْ حالانکه دا غرض حاصل نشو. فَلَهُ أَنْ يَنْقُضَ قَبْضَهُ نو ددې وکیل قبضه ماتول به جائز وي.

**تشریح:** اوس هغه مال کوم چې قرضدار اول د وکالت مدعی ته ورکړې وو. که د وکالت مدعی سره موجود وي. نو قرضدار به هغه مال د وکالت مدعی نه واپس اخلي. ځکه چې د وکالت مدعی ته مال ور کاوه سره د قرضدار غرض دا وو. چه د قرضدار ذمه به برې شي. حالانکه د قرضدار ذمه برې نشوه. نو هرکله چې د قرضدار ذمه برې نشوه. او مال د وکالت مدعی سره موجود دې. نو قرضدار ته به ددې خبرې اختیار وي. چې هغه د وکالت د مدعی قبضه ختمه کړي. اود پور مال هغه نه واپس واخلي.

(وَإِنْ كَانَ) ضَاعَ (فِي يَدِهِ) اوکه د وکیل په قبضه کې هغه مال ضائع شو. لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ نو قرضدا به د هغه نه

رجوع نه کوي. لِأَنَّهُ بِتَصْدِيقِهِ اعْتَرَفَ خکه چې قرضدار د وکیل د قول تصدیق کاوه سره دا اقرار کړې دې. أَنَّهُ مُحِقٌّ فِي الْقَبْضِ چې وکیل په قرضه وصولولوکې په حقه دې. وَهُوَ مَظْلُومٌ فِي هٰذَا الْأَخْذِ، او قرضدار د قرضخواه په دوباره وصولولوکې مظلوم دې. وَالْمَظْلُومُ لَا يَظْلِمُ غَيْرَهُ او مظلوم په بل باندې ظلم نشي کولې.

تشریح: اوکه هغه مال د وکالت دمدعي نه ضائع شو. نو قرضدار به د وکالت مدعي نه هغه مال واپس نه اخلي. خکه چې قرضدار د وکالت دمدعي د قول تصدیق کاوه سره ددې خبرې اقرار کړې وو. چه د وکالت مدعي په قرضه وصولولوکې په حقه دې. او کوم سړې چې په حقه وي. او قبضه اوکړي. هغه نه مقبوض شې واپس نشي اخستلې. په دې وجه به د وکالت مدعي نه مذکوره مال واپس نشي اخستلې. زیات نه زیات دا وئیلې شي. چه قرضخواه ته په دوباره ور کاوه سره قرضدار مظلوم شوې دې. نو مونږ خواب ورکوو. چه قرضدار بلاشبه مظلوم دې. خو ده ته په نورو باندې د ظلم کاوه اختیار نشته. نود مال هلاکیدلو نه روسته به قرضدار ته د وکالت مدعي یعنې شاهد نه د مال واپس اخستلو اختیار نه وي.

### د قرضدارۍ د مال ورکولو په وخت کښې د وکیل ضامن جوړول

قَالَ (إِلَّا أَنْ يَكُونَ ضَمِنَهُ عِنْدَ الدَّفْعِ) خو که قرضدار د مال ور کاوه په وخت وکیل ضامن جوړ کړی (نو وکیل نه به مال واپس اخستلې شي)

تشریح: ددې عبارت تعلق د «لم يرجع عليه» عبارت سره دې. او مطلب دادې. که هغه مال کوم چې قرضدار وکیل ته ورکړې وو. د وکیل په قبضه کې ضائع شو. نو قرضدار به وکیل ته رجوع نه کوي. یعنې دا مال به واپس نه اخلي. خو یو صورت داسې دې چه په دې کې قرضدار د وکیل نه مال واپس اخستلې شي. او هغه صورت دادې. که وکیل د قرضدار د اړخه ضامن شو. مثلاً وکیل قرضدار ته دا اووئیل. چه زه ستا لپاره ضامن یم. که قرضخواه ستا نه دوباره قرضه وصول کړله. نو زه به ستا دا کړې مال واپس درکوم. نو په دې صورت کې که دا مال د وکیل په قبضه کې ضائع شو. نو بیا هم قرضدار له د وکیل نه مال واپس اخستل جائز دی.

لِأَنَّ الْمَأْخُوذَ ثَانِيًا خکه چې د قرضدار نه کوم دوباره اخستلې شوې دې. مَضْمُونٌ عَلَيْهِ فِي زَعْمِهِمَا، هغه د وکیل او قرضدار دواړو په ګمان کې قرضخواه باندې مضمون دې. وَهٰذِهِ كَفَالَةٌ أُضِيفَتْ إِلَى حَالَةِ الْقَبْضِ او دا داسې کفالت دې. کوم چې د قبضې حالت اړخ ته مضاف شوې دې. فَتَصِحُّ بِمَنْزِلَةِ الْكَفَالَةِ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلَى فُلَانٍ نو دا کفاله صحیح ده. «ما ذاب له على فلان» سره د کفاله په مرتبه کې،

تشریح: ددې دلیل دادې. چه کوم مال د قرضدار نه دوباره اخستې شوې دې. یعنې قرضدار یوځل وکیل ته ادا کړې دې. اوس په دوهم ځلی چې کوم مال قرضخواه وصول کړې دې. دا مال د وکیل او قرضدار دواړو د خیال مطابق قرضخواه باندې مضمون دې. خکه چې قرضخواه ددوی دواړو په حق کې په دوباره وصولولو کې غاصب دې. او غاصب مضمون علیه وي. نو قرضخواه به مضمون علیه وي. او وکیل به د قرضخواه د اړخه قرضدار لپاره ضامن وي. ګویا وکیل قرضدار ته داسې اووئیل. چه زه ستا لپاره ددې مال ضامن یم. په کوم مال چې ستا د اړخه فلانې یعنې قرضخواه قبضه کوي. اودا ضمان او کفاله صحیح هم ده. خکه چې دا ضمان د ضمان د وجوب سبب یعنې د قرضخواه قبضه اړخ ته منسوب کړې شوې دې. اودا بالکل داسې ده. لکه چې څوک داسې اووائي. چه زه دهغې ضامن او کفیل یم. کوم چې په فلانې سړي باندې واجب وي. یعنې لکه څنګه چې د ,,ماذاب له على فلان،، په صورت کې مستقبل کې د واجبیدونکې مال ضامن او کفیل کیدل صحیح دي. دغه ډول دلته کې د وکیل په قرضخواه باندې مستقبل کې د واجبیدونکي مال ضامن کیدل هم صحیح دي. بهرحال دا ضمانت صحیح دې. او هرکله چې دا ضمان صحیح دې. نو قرضدار له به ضامن یعنې وکیل نه دهغه مال اخستل جائز وي. د کوم چې دې قرضدار لپاره ضامن شوې دې.



وَلَوْ كَانَ الْغَرِيمُ لَمْ يُصَدِّقْهُ عَلَى الْوَكَالَةِ او که قرضدار وکالت باندې د وکیل تصدیق اونکړو. وَدَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى ادِّعَائِهِ، او وکیل ته ئې مال ورکړو. د هغه د توکیل په دعوه (په بنا) باندې. فَإِنْ رَجَعَ صَاحِبُ الْمَالِ عَلَى الْغَرِيمِ بیا که قرضخواه په قرضدار باندې رجوع اوکړله. رَجَعَ الْغَرِيمُ عَلَى الْوَكِيلِ نو قرضدار به وکیل اړخ ته رجوع کوي. لِأَنَّهُ لَمْ يُصَدِّقْهُ عَلَى الْوَكَالَةِ، خکه چې قرضدار په وکالت کې د وکیل تصدیق نه دې کړې. وَإِنَّمَا دَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى رَجَاءِ الْإِجَازَةِ، بلکه صرف د اجازت په امید باندې ئې هغه ته قرضه ورکړې ده. فَإِذَا انْقَطَعَ رَجَاؤُهُ نو هرکله چې دده امید منقطع شو. رَجَعَ عَلَيْهِ نو قرضدار به هغه ته رجوع کوي.

تشریح: په دې عبارت سره مرغیناني رحمه الله دا مسئله ذکرکړې ده. که یوسړي دا دعوه اوکړله. چه زه د فلانې غائب په قرضه باندې د قبضه وکیل یم. او قرضدار نه د وکیل تصدیق اوکړو. اونه ئې تکذیب اوکړو. بلکه سکوت او چوپوالې ئې اختیار کړو. خو قرضدار صرف د توکیل د دعوې په وجه وکیل ته د پور مال ورکړو. نو اوس که قرضخواه د قرضدار نه د پور مطالبه اوکړله. نو قرضدار ته به د وکیل نه د پور مال واپس اخستلو اختیار وي. خکه چې قرضدار وکالت باندې د وکیل تصدیق نه ووکړې. بلکه هغه ته په دې امید باندې مال ورکړې وو. چه شاید قرضخواه دې وکیل ته په مال باندې د قبضه کاوه اجازت ورکړي. خو کله چې د قرضخواه د مطالبه کاوه په وجه د قرضدار دا امید منقطع شو. نو قرضدار ته به وکیل اړخ ته د رجوع اختیار وي. هم دا حکم هغه وخت دې. کله چې قرضدار د توکیل په دعوه کې د وکیل تکذیب کړې وي. خو ددې باوجود ئې هغه ته د پور مال ورکړې وي. نو په دې صورت کې به هم قرضدار ته وکیل نه د پور مال واپس اخستلو اختیار وي. په دې شرط چې قرضخواه د قرضدار نه د پور مطالبه کړې وي. دلیل هم هغه دې. کوم چې ددې نه وړاندې ذکر کړې شو. چه قرضدار د اجازت په امید باندې ورکړې وو. خود قرضخواه په مطالبه کاوه سره دا امید منقطع شو. نو قرضدار ته به وکیل اړخ ته د رجوع اختیار وي.

وَكَذَا إِذَا دَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى تَكْذِيبِهِ إِيَّاهُ فِي الْوَكَالَةِ. او هم دغه ډول که وکیل ئې په وکالت کې دروغجن کړې وي. او د پور مال ئې ورکړې وي وَهٰذَا أَظْهَرُ لِمَا قُلْنَا اودا ښکاره ده. د هغه دلیل په وجه کوم چې مونږ بیان کړو.

تشریح: مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه د تکذیب په صورت کې د قرضدار وکیل اړخ ته د رجوع کاوه جواز ښکاره دې. په نسبت د ړومبي دوې (دوه) صورتونوکې د رجوع د جواز نه. یعنې قرضدار د وکیل تصدیق اوکړو. او هغه ئې ضامن جوړکړو. یا قرضدرا سکوت اختیار کړو. نو هرکله چې په دې دواړو صورتونو کې قرضدار ته وکیل اړخ ته د رجوع اختیار شته. نود تکذیب په صورت کې به په درجه اولی د رجوع اختیار وي.

وَفِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَرِدَّ الْمَدْفُوعَ او په دې ټولو صورتونوکې قرضدار ته ددې خبرې اختیار نشته. چه هغه ورکړې شوې مال واپس واخلي. حَتَّى يَحْضُرَ الْغَائِبُ تردې چې غائب حاضر شي. لِأَنَّ الْمُؤَدَّى صَارَ حَقًّا لِلْغَائِبِ، خکه چې اداکړې شوې مال د غائب حق شو. إِمَّا ظَاهِرًا أَوْ مُحْتَمَلًا یا ظاهراً یا محتملاً،

تشریح: مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه په مذکوره څلور واړه صورتونو ① تصدیق بلا تضمین ② تصدیق مع التضمین ③ سکوت ④ تکذیب.... کې کله چې قرضدار وکیل ته مال ورکړو. نود غائب (قرضخواه) حاضریدلو نه وړاندې به قرضدار ته دا اختیار نه وي. چه مذکوره مال د وکیل نه واپس واخلي.

دلیله◉ قرضدار کوم مال وکیل ته ورکړې دې. هغه د غائب حق شوې دې. که قرضدار په دعوه د توکیل کې د وکیل تصدیق اوکړو. نودا خبره بالکل ښکاره ده. چه هغه مال د غائب حق شو. اوکه قرضدار سکوت اختیار کړو. یا ئې د وکیل تکذیب اوکړو. نو په دې دواړو صورتونوکې ددې خبرې احتمال ضرور دې. چه غائب ددې مال حقدار شو. بهرحال هرکله چې دا مال د غائب حق شو. نود غائب (قرضخواه) حاضریدلو نه وړاندې به قرضدار ته د وکیل نه د واپس اخستلو اختیار نه وي.

فَصَارَ كَمَا إِذَا دَفَعَهُ إِلَى فُضُولِيٍّ عَلَى رَجَاءِ الْإِجَازَةِ نودا داسې شوه. لکه چې قرضدار یو فضولي ته د اجازت په

امید باندې ورکړې وي. لَمْ يَمْلِكِ الْإِسْتِرْدَادَ لِاحْتِمَالِ الْإِجَازَةِ نود اجازت د احتمال په وجه به قرضدار د واپس اخستلو مالك نه وي. وَلِأَنَّ مَنْ بَاشَرَ التَّصَرُّفَ لِغَرَضٍ ځکه چې کوم سړی څه تصرف په کوم غرض کړې وي. لَيْسَ لَهُ أَنْ يَنْقُضَهُ مَا لَمْ يَقَعِ الْيَأْسُ عَنْ غَرَضِهِ نو هغه لپاره جائز نه دی چه هغه دا تصرف مات کړی. ترکوم وخته پورې چې هغه ته د خپل غرض نه نا امیدي نه وي.

**تشريح: نظیره** اودا داسې شوه. لکه چې قرضدار کوم یو فضولي ته په دې امید مال ورکړې وي. چه شاید قرضخواه اجازت ورکړي. نود اجازت د احتمال په وجه قرضدار ته د مذکوره مال واپس اخستلو اختیار نشته. دغه ډول دلته به هم د مال واپس اخستلو اختیار نه وي.

**الدليل الثاني** که یوکس کوم کار په کوم غرض سره کړې وي. نو هغه ته دا اختیار نشته. چه دا تصرف مات کړي. ترکومه پورې چې هغه ته د خپل غرض نه نا امیدي نه وي. نو قرضدار چې وکیل ته د پور رقم ور کاوه سره کوم کار کړې دې. د هغه غرض دادې. چه د قرضدار ذمه بری شي. او قرضخواه ته د مطالبې حق پاتې نشي. نو ترکومه پورې چې ددې غرض پوره کیدلو نه نا امیدي نه وي. تر هغه وخته پورې به هغه ته د پور اخستلو اختیار نه وي.

## د مودع د ودیعت د قبضې د وکیل تصدیق کول

(وَمَنْ قَالَ) که یوسړي اووئیل. إِنِّي وَكِيلٌ بِقَبْضِ الْوَدِيعَةِ چې زه په ودیعت باندې د قبضه کاوه وکیل یم. فَصَدَّقَهُ الْمُودِعُ) او مودع د هغه تصدیق اوکړو. لَمْ يُؤْمَرْ بِالتَّسْلِيمِ إِلَيْهِ نو مودع ته به حکم نشي ورکولې. چه هغه دې وکیل ته ودیعت اوسپاری. لِأَنَّهُ أَقَرَّ لَهُ بِمَالِ الْغَيْرِ ځکه چې دا د غیر د مال اقرار دې. بِخِلَافِ الدَّيْنِ په خلاف د قرضې.

**تشريح: تعريف المودع والوديعة** مودَع ، ،بفتح الدال، ، هغه سړې چاسره چې د ودیعت مال ایخودلې شوې وی. یعنی امین او مودِع ، ،بکسرالدال، ، دودیعت مال ایخودونکې یعنی دمال مالك.

**صورة المسئلة** یوسړی مثلاً عبدالله خپل مال عبدالرحمن سره د ودیعت په طور باندې کیخودلو. بیا یو دریم سړی مثلاً شاهد په مودَع باندې دعوه اوکړله. چه زه د مودِع د اړخه د ودیعت په دې مال باندې د قبضه کاوه وکیل یم. اومودَع دده تصدیق هم اوکړو. نو مودع ته به دا حکم نشي ورکولې. چه هغه مدعی ته د ودیعت مال اوسپاری.

**دليله** ځکه چې مودَع سره کوم د ودیعت مال دې. هغه د مودِع ملك دې. او مودَع ددې اقرار کونکې هم دې. نو د مودَع د وکالت د مدعی تصدیق کول په حقیقت کې د غیر یعنی د مودِع په مال باندې د وکالت د مدعی لپاره د قبضې د حق اقرار کول دی. اود غیر په مال باندې د قبضې د حق اقرار کول ټیك نه دې. او هرکله چې دا اقرار صحیح نه دې. نو مودَع به دا حکم هم نشي ورکولې. چه هغه د ودیعت مال د وکالت مدعی ته حواله کړي. او قرضدار ته به حکم ورکولې شي. چه هغه د پور مال د وکالت مدعی ته ورکړي. ځکه چې دیون او پور بامثالها اداکولې شي. باعیانها نشي اداکولې. نود قرضدار تصدیق کول به د وکالت د مدعی لپاره قرضه باندې د قبضه کاوه د حق اقرار کول وي. په غیر یعنی قرضخواه باندې به نه وي. نو هرکله چې د قرضدار اقرار پخپله دده په ذات باندې دې. نودا اقرار به صحیح وي. او هرکله چې په دې صورت کې اقرار صحیح دې. نو قرضدار ته دا حکم ورکول به هم صحیح وي. چه هغه د پور مال د وکالت مدعی ته اوسپاری.

وَلَوِ ادَّعَى او که یوکس دعوه اوکړله. أَنَّهُ مَاتَ أَبُوهُ چې دده پلار مړشوې دې. وَتَرَكَ الْوَدِيعَةَ مِيرَاثًا لَهُ او هغه دده (زما) لپاره ودیعت میراث پریښودې دې. وَلَا وَارِثَ لَهُ غَيْرُهُ او دده (زما) نه علاوه دهغه څوك وارث هم نشته. وَصَدَّقَهُ الْمُودَعُ او مودع دده تصدیق اوکړو. أُمِرَ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مودع ته به د هغې د سپارلو حکم ورکولې شي. لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى



مَالُهُ بَعْدَ مَوْتِهِ ځکه چې د مودع د مرګ نه روسته دا د هغه مال پاتې نشو. فَقَدِ اتَّفَقَا عَلَى أَنَّهُ مَالُ الْوَارِثِ اومودع او مدعی دواړو اتفاق اوکړو. چه دا د وارث مال دې.

**تشريح:** مرغيناني رحمه الله فرمائي. که یوسړي دعوه اوکړله. چه زما پلار مړشوې دې. او د ودیعت مال کوم چې فلانی مودَع سره دې. هغه زما پلار زما لپاره میراث پریښودې دې. اوحال داچه د مړی ددې مدعی نه علاوه بل څوك وارث هم نشته. او مودَع د میراث د مدعی د قول تصدیق هم اوکړو. نو مودَع ته په حکم ورکولی شي. چه هغه د ودیعت مال دې مدعی ته ورکړي. ځکه چې د مودِع د وفات نه روسته د ودیعت مال د هغه مال پاتې نشو. یعنی په مرګ سره د هغه ملك ختم شو. اود میراث مدعی او مودَع دواړو په دې خبره اتفاق اوکړو چه د ودیعت دا مال د وارث مال دې. نو هرکله چې دواړو په دې خبره باندې اتفاق اوکړو. نو هغه مال به د میراث مدعی ته ورکول ضروري وي.

وَلَوِ ادَّعَى او که دعوه ئې اوکړله. أَنَّهُ اشْتَرَى الْوَدِيعَةَ مِنْ صَاحِبِهَا چې ده د مودع نه ودیعت اخستې دې. فَصَدَّقَهُ الْمُودَعُ بیا مودع د هغه تصدیق اوکړو. لَمْ يُؤْمَرْ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ نو مودع ته به دې مدعی ته د سپارلو حکم نشي ورکولې. لِأَنَّهُ مَا دَامَ حَيًّا ځکه چې مودع ترکومه پورې ژوندې دې. كَانَ إِقْرَارًا بِمِلْكِ الْغَيْرِ نودا به دغیر د ملك اقرار وي. لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِهِ ځکه چې مودع د ملك اهلیت لري. فَلَا يُصَدَّقَانِ فِي دَعْوَى الْبَيْعِ عَلَيْهِ نو په دعوه د بیع کې به د مودع او مدعی په مودع باندې تصدیق نشي کولې.

**تشريح:** مرغيناني رحمه الله فرمائي. که یوسړي دعوه اوکړله. چه ما د مودِع نه د ودیعت مال اخستې دې. او مودَع د شراء د مدعی تصدیق هم اوکړو. نو مودَع ته به دا حکم نشي ورکولې. چه د ودیعت مال د شراء مدعی ته اوسپاری. ځکه چې مودِع ترکومه پورې ژوندې وي. تر هغه پورې هغه د مال کیدلو صلاحیت لري. نود ودیعت د مال مالك به هم مودِع وي. او هرکله چې مودِع ودیعت د مال مالك دې. نود مودَع د شراء د مدعی د قول تصدیق کول، دغیر یعنی د مودِع مال د شراء د مدعی لپاره اقرار کول شو. اود غیر د مال دبل چا لپاره اقرار کول، چونکه د مودِع خلاف د مودَع اود شراء د مدعی د قول تصدیق به نشي کولې. او هرکله چې ددوی دواړو د قول تصدیق اونکړې شو. نو مودَع ته به داحکم هم نشي ورکولې. چه هغه د شراء مدعی ته د ودیعت مال ورکړي.

## د قرضدار د قرضې قبض کولو د وکیل تصدیق کولو سره د قرضې حکم

قَالَ (فَإِنْ وَكَّلَ وَكِيلًا يَقْبِضُ مَالَهُ که یوکس د خپل مال وصولولو لپاره څوك وکیل کړو. فَادَّعَى الْغَرِيمُ أَنَّ صَاحِبَ الْمَالِ قَدِ اسْتَوْفَاهُ بیا قرضدار اووئیل. چه صاحب د مال خپل مال وصول کړې دې. فَإِنَّهُ يَدْفَعُ الْمَالَ إِلَيْهِ) نو مال به وکیل ته ورکولې شي. لِأَنَّ الْوَكَالَةَ قَدْ ثَبَتَتْ ځکه چې وکالت ددوی دواړو په اتفاق سره ثابت شوې دې. وَالْإِسْتِيفَاءُ لَمْ يَثْبُتْ بِمُجَرَّدِ دَعْوَاهُ او مال وصولول صرف په دې دعوه سره نه ثابتیږي. فَلَا يُؤَخَّرُ الْحَقُّ نو حق به نشي مؤخر کولې.

**تشريح:** دلیل دادې. چه وکالت د وکیل او قرضدار دواړو په اتفاق سره ثابت شوې دې. په بعض نسخوکې د ، ،بالتصادق، ، لفظ نشته. نو د صاحب د عنایه رحمه الله د قول مطابق به د هغه نسخو مطلب دا وي. چه وکالت بینه سره ثابت شوې دې. ځکه چې مسئله په دې صورت کې فرض کړې شوې ده. چه وکیل خپل وکالت د بینه په ذریعه ثابت کړې وي. بهرحال د وکیل وکالت ثابت شو. اود قرضخواه د پور مال وصولول صرف د قرضداری په دعوه سره نه ثابتیږي. نو وکیل ته چې د پور په مال د قبضه کاوه کوم حق وو. هغه به د قرضخواه نه د قسم اخستلو پورې نشي مؤخرکولې. بلکه وکیل ته به د پور مال ورکولې شي. او دا حق به فوراً اداکولې شي.

قَالَ (وَيَتَّبِعُ رَبُّ الْمَالِ) او قرضدار به قرضخواه پسې لګی. فَيَسْتَحْلِفُهُ) رِعَايَةً لِجَانِبِهٖ، اوهغه څخه به قسم اخلی.چه
د قرضدار د اړخ لحاظ اوساتلې شی. وَلَا يَسْتَحْلِفُ الْوَكِيلَ او وکيل څخه به قسم نشی اخستلې. لِأَنَّهُ نَائِبٌ څکه
چې هغه د خپل موکل نائب دې.

**تشريح:** البته قرضدار به د قرضخواه لمنه نيسی.اود قرضخواه څخه به قسم اخلی.څکه چې د قرضدار رعايت ساتل هم ضروري دی.او په دې قسم اخستلوکې بلاشبه د قرضدار رعايت دې.بهرحال که قرضدار دا قسم اوخوړلو. چې ما د پور مال نه دې وصول کړې.نو قرضدار چې کوم مال وکيل ته ورکړې دې.هغې سره به د پور اداکول صحيح کيږی.اودغه ادا کول به نافذ وی.اوکه قرضخواه د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو قرضدار به د قابض يعنی د وکيل لمنه نيسی.او اخستلې شوې مال به د هغه نه واپس اخلی.مرغينانی رحمه الله فرمائی چه د قرضخواه په بدله کې به وکيل نه قسم نشی اخستلې.څکه چې وکيل د هغه نائب دې.او په ايمان (قسم) کې نيابت نه جاري کيږی.

## مشتري باندې د رضا مندئ دعوه کولو حکم

قَالَ (وَإِنْ وَكَّلَهُ بِعَيْبٍ فِي جَارِيَةٍ) اوکه يوکس نې په وينځه کې د عيب په وجه د واپس کاوه وکيل کړو فَادَّعَى الْبَائِعُ رِضَا الْمُشْتَرِي بيا بائع دعوی اوکړله.د مشتري د راضی کيدلو. لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتّٰى يَحْلِفَ الْمُشْتَرِي) نو وکيل په بائع باندې نشی واپس کولې.تردې چې مشتري نه قسم واخلی.

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې.که يوکس په اخستې شوې وينځه کې عيب اوموندلو.او يوسړې نې بائع اړخ ته د وينځې واپس کاوه وکيل کړو.او بائع دعوه اوکړله.چه مشتري په دې عيب باندې راضی شوې وو.نو په حکم د قضاء، وکيل دا عيب داره وينځه بائع اړخ ته نشی واپس کولې.يعنی قاضی به ددې وينځې د واپس کاوه حکم نه صادرکوی.البته که مشتري په دې خبره قسم اوخوری.چه زه په دې عيب باندې نه ووم راضی شوې (نو د واپس کاوه حکم به ورکولې شی).

بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الدَّيْنِ په خلاف د مسئلې د قرض، لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ هُنَالِكَ بِاسْتِرْدَادِ مَا قَبَضَهُ الْوَكِيلُ إِذَا ظَهَرَ الْخَطَأُ عِنْدَ نُكُولِهٖ، څکه چې د پور په مسئله کې تدارک (راګرځول) ممکن دې.په واپس کاوه د هغه شئ کوم چې وکيل قبضه کړې دې.کله چې د قرضخواه د قسم نه انکار په وخت خطاء ښکاره شوی وی.

**تشريح:** ددې په خلاف د پور مسئله ده.که قرضدار دا دعوه اوکړی.چه قرضخواه خپله قرضه وصول کړې ده.نود قرضخواه نه د قسم اخستلو نه بغير به قرضدار ته حکم ورکولې شی.چه د پور مال وکيل ته ور کړی.په دې دواړو مسئلوکې وجه د توپير دا ده.چه په مسئله د پور کې که د قرضخواه د قسم خوړلو نه انکار کاوه په وجه وکيل ته د پور مال ورکول غلط کيدل ښکاره شو.نو ددې تدارک (او راګرځول) ممکن ...په دې طريقه چې کوم مال وکيل ته ورکړې شوې وو.قرضدار به هغه نه هغه مال واپس اخلی.څکه چې د ...نی دا حکم چې د پور مال دې وکيل ته ورکړې شی.صرف ظاهراً نافذ کيږی.باطناً نه نافذ کيږی.نو ...له چې دلته کې د قاضی حکم صرف ظاهراً نافذ دې.او باطناً نافذ نه دې.نود وکيل څخه به ددې مال په ... اخستلو کې هيڅ مشکل نه راپيښيږی.

...مَا غَيْرُ مُمْكِنٍ او په دويمه مسئله کې راګرځول ممکن نه دی. لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِالْفَسْخِ مَاضٍ عَلَى الصِّحَّةِ وَإِنْ ظَهَرَ ...عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ (۱) څکه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز فسخ باندې فيصله کول به

(۱) الراجح [illegible] رحمه الله كذا فى ردالمحتار(۴۶۱\۱۴) وملتقى الأبحر(۳۳۷\۳) وفتح القدير (۱۲۵\۷)
نهر [illegible] ل الراجح(۱۶۴\۱۲)



صحت باندې جاری کيږی.لکه څنګه چې د هغوی مذهب دې.

**تشريح:** اوپه دويمه مسئله کې د قاضی د غلطئ ښکاره کيدلو نه روسته تدارک ممکن نه دې.څکه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز که قاضی بيع فسخ کړله.اود مشتري نه د قسم اخستلو نه بغير نې معيب وينځه بائع ته ورکړله.نوبيا به هم دا بيع فسخ وی.اګرچه دا ښکاره شی.چه فسخ کول غلط وو.څکه چې د امام صاحب رحمه الله په نيز د قاضی فيصله په عقود او فسوخ کې ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ کيږی.او هرکله چې د قاضی فيصله دواړه شان نافذ شوه.نود قاضی د يوځل فسخ کاوه نه روسته دا فسخ نشی ختميدلې.اګرچه مشتري د قسم خوړلو نه انکار اوکړی.اودا خبره ثابته شی.چه مشتري په عيب باندې راضی شوې وو.بلکه د قاضی دفسخ حکم کاوه نه روسته به مشتري نه قسم نشی اخستلې.څکه چې اوس قسم اخستل بې فائدې دی.او بې فائدې څکه دې.چه هرکله قاضی بيع فسخ کړله.نو مشتري که د قسم خوړلو نه انکار هم اوکړی.او عيب باندې دهغه رضامندی ثابت هم شی.نو بيا هم دا فسخ نشی ختميدلې.څکه چې دا فسخ ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ شوې ده.

وَلَا يَسْتَحْلِفُ الْمُشْتَرِي عِنْدَهُ بَعْدَ ذٰلِكَ اوددې نه روسته د امام صاحب رحمه الله په نيز مشتري څخه به قسم نشی اخستلې. لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ، څکه چې دا مفيد نه دې. وَأَمَّا عِنْدَهُمَا قَالُوا: اود صاحبينو رحمهما الله په نيز مشائخ فرمائی. يَجِبُ أَنْ يَتَّحِدَ الْجَوَابُ عَلٰى هٰذَا فِي الْفَصْلَيْنِ چې په دواړو صورتونوکې حکم برابر کيدل پکار دی. وَلَا يُؤَخَّرُ اود واپس کولوپه حکم کې به تاخير نشی کولې. لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ عِنْدَهُمَا لِبُطْلَانِ الْقَضَاءِ. څکه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز تدارک ممکن دې.په دې وجه حکم د قضاء باطل دې.

**تشريح:** دا خيال ساتل پکار دی.چه په دې دواړو صورتونوکې مذکوره توپير صرف د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې. ګنې د صاحبينو رحمهما الله په نيز دواړه صورتونوکې يوحکم دې.يعنی په مسئله د پور کې د قرضخواه نه د قسم اخستلو نه بغير به د پور مال وکيل ته ورکولې شی.او په مسئله د رد بالعيب (د معيب وينځې واپس کولو) کې به مشتري نه د قسم اخستلونه بغير وينځه بائع ته ورکولې شی.د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه په دواړو صورتونوکې تدارک ممکن دې.څکه چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د قاضی حکم صرف ظاهراً نافذ کيږی.او باطناً نه نافذ کيږی.نوکه د مشتري نه د قسم اخستلو نه بغير معيب وينځه بائع ته ورکړې شوه.او بيا مشتري د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نود قاضی د فيصلې خطاء ښکاره کيدلو نه روسته به دا معيب وينځه بائع نه اخستلې شی.او مشتري ته به ورکولې شی.اود قاضی د بيع د فسخ فيصله به منسوخ کولې شی.څکه چې د قاضی حکم که ظاهراً نافذ وی.نودا منسوخ کيدلې شی.

وَقِيلَ الْأَصَحُّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنْ يُؤَخَّرَ فِي الْفَصْلَيْنِ اوويلی شوی دی.چه د ابويوسف رحمه الله په نيز به دواړو صورتونوکې موخر کولې شی. لِأَنَّهُ يَعْتَبِرُ النَّظَرَ څکه چې انتظار معتبر دې. حَتّٰى يَسْتَحْلِفَ الْمُشْتَرِيَ تردې چې مشتري نه قسم واخستلې شی. لَوْ كَانَ حَاضِرًا مِنْ غَيْرِ دَعْوَى الْبَائِعِ په دې شرط چې د بائع د دعوې نه بغير هغه حاضر شوې وی. فَيَنْتَظِرُ لِلنَّظَرِ نود غور کاوه لپاره به انتظار کولې شی.

**تشريح:** او بعض مشائخ فرمائی.چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز اصح دادی. چې په دواړه صورتونو کې به تاخير کولې شی.يعنی په مسئله د پور کې به قرضخواه نه د قسم اخستلونه بغير وکيل ته د قرضه مال نشی ورکولې. او په مسئله د بيع کې مشتري نه قسم اخستلو نه بغير به معيب وينځه بائع ته نشی واپس کولې.څکه چې امام ابويوسف رحمه الله په قرضدار او بائع باندې د شفقت لحاظ ساتی.اود شفقت تقاضا داده.که مشتري موجود وی.او معيب وينځه بائع اړخ ته واپس کول اوغواړی.نود مشتري نه د قسم اخستلو نه بغير به معيب وينځه بائع اړخ ته نشی واپس کولې.اګرچه بائع د مشتري په عيب باندې د راضی کيدلو دعوه هم نه وی کړې.دغه ډول که مشتري غائب وی.نو بيا به هم د قسم اخستلو نه بغير معيب وينځه بائع اړخ ته

قَالَ (وَيَتَّبِعُ رَبُّ الْمَالِ) و قرضدار به قرضخواه پسې لګی. (فَيَسْتَحْلِفُهُ) رِعَايَةً لِجَانِبِهِ، اوهغه څخه به قسم اخلی.چه د قرضدار د اړخ لحاظ اوساتلې شي. وَلَا يَسْتَحْلِفُ الْوَكِيلَ او وكيل څخه به قسم نشی اخستلې. لِأَنَّهُ نَائِبٌ څکه چې هغه د خپل موکل نائب دې.

تشریح: البته قرضدار به د قرضخواه لمنه نيسی.اود قرضخواه څخه به قسم اخلی.څکه چې د قرضدار رعایت ساتل هم ضروری دی.او په دې قسم اخستلوکې بلاشبه د قرضدار رعایت دې.بهرحال كه قرضدار دا قسم اوخوړلو. چې ما د پور مال نه دې وصول کړې.نو قرضدار چې کوم مال وکیل ته ورکړې دې.هغې سره به د پور اداکول صحیح کیږی.اودغه ادا کول به نافذ وی.اوکه قرضخواه د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو قرضدار به د قابض یعنی د وکیل لمنه نیسی.او اخستلې شوې مال به د هغه نه واپس اخلی.مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه د قرضخواه په بدله کې به وکیل نه قسم نشی اخستلې.څکه چې وکیل د هغه نائب دې.او په ایمان (قسم) کې نیابت نه جاری کیږی.

## مشتری باندې د رضا مندئ دعوه كولو حكم

قَالَ (وَإِنْ وَكَّلَهُ بِعَيْبٍ فِي جَارِيَةٍ) اوکه یوکس نې په وینځه کې د عیب په وجه د واپس کاوه وکیل کړو. (فَادَّعَى الْبَائِعُ رِضَا الْمُشْتَرِي) بیا بائع د عوی اوکړله.د مشتری د راضی کیدلو. (لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى يَحْلِفَ الْمُشْتَرِي) نو وكيل به بائع باندې نشی واپس کولې.تردې چې مشتری نه قسم واخلی.

تشریح: صورت د مسئلې دادې.كه يوكس په اخستې شوې وينځه كې عيب اوموندلو.او يوسړې نې بائع اړخ ته د وینځې واپس کاوه وکیل کړو.او بائع دعوه اوکړله.چه مشتری په دې عیب باندې راضی شوې وو.نو په حکم د قضاء، وکیل دا عیب داره وینځه بائع اړخ ته نشی واپس کولې.یعنی قاضی به ددې وینځې د واپس کاوه حکم نه صادرکوی.البته که مشتری په دې خبره قسم اوخوری.چه زه په دې عیب باندې نه ووم راضی شوې (نو د واپس کاوه حکم به ورکولې شی).

بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الدَّيْنِ په خلاف د مسئلې د قرض. لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ هُنَالِكَ بِاسْتِرْدَادِ مَا قَبَضَهُ الْوَكِيلُ څکه چې د پور په مسئله کې تدارك (راګرځول) ممکن دې.په واپس کاوه د هغه شئ کوم چې وکیل قبضه کړې دې. إِذَا ظَهَرَ الْخَطَأُ عِنْدَ نُكُولِهِ، کله چې د قرضخواه د قسم نه انکار په وخت خطاء ښکاره شوی وی.

تشریح: ددې په خلاف د پور مسئله ده.كه قرضدار دا دعوه اوكړى.چه قرضخواه خپله قرضه وصول كړې ده.نود قرضخواه نه د قسم اخستلو نه بغیر به قرضدار ته حکم ورکولې شی.چه د پور مال وکیل ته ورکړی.په دې دواړو مسئلوکې وجه د توپیر دا ده.چه په مسئله د پور کې که د قرضخواه د قسم خوړلو نه د انکار کاوه په وجه وکیل ته د پور مال ورکول غلط کیدل ښکاره شو.نو ددې تدارك (او راګرځول) ممكن دی.په دې طریقه چې کوم مال وکیل ته ورکړې شوې وو.قرضدار به هغه نه هغه مال واپس اخلی.څکه چې د قاضی دا حکم چې د پور مال دې وکیل ته ورکړې شی.صرف ظاهراً نافذ کیږی.باطناً نه نافذ کیږی.نو هرکله چې دلته کې د قاضی حکم صرف ظاهراً نافذ دې.او باطناً نافذ نه دې.نود وکیل څخه به ددې مال په واپس اخستلو کې هیڅ مشکل نه راپیښیږی.

وَهَاهُنَا غَيْرُ مُمْكِنٍ او په دویمه مسئله کې راګرځول ممکن نه دی. لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِالْفَسْخِ مَاضٍ عَلَى الصِّحَّةِ وَإِنْ ظَهَرَ الْخَطَأُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ[1] څکه چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز فسخ باندې فیصله کول به

[1] القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۴۶۱\۱۴) وملتقی الأبحر(۳۳۷\۳) ومجمع الأنهر(۳۳۷\۳) نقلاً عن القول الراجح(۱۶۴\۱۲) وفتح القدير (۱۲۵\۷)



صحت باندې جاری کیږی.لکه څنګه چې د هغوی مذهب دې.

تشریح: اوپه دویمه مسئله کې د قاضی د غلطۍ ښکاره کیدلو نه روسته تدارك ممکن نه دې.څکه چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز که قاضی بیع فسخ کړله.اود مشتری نه د قسم اخستلو نه بغیر نې معیب وینځه بائع ته ورکړله.نوبیا به هم دا بیع فسخ وی.اګرچه دا ښکاره شی.چه فسخ کول غلط وو.څکه چې د امام صاحب رحمه الله په نیز د قاضی فیصله په عقود او فسوخ کې ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ کیږی.او هرکله چې د قاضی فیصله دواړه شان نافذ شوه.نود قاضی د یوځل فسخ کاوه نه روسته دا فسخ نشی ختمیدلې.اګرچه مشتری د قسم خوړلو نه انکار اوکړی.اودا خبره ثابته شی.چه مشتری په عیب باندې راضی شوی وو.بلکه د قاضی دفسخ حکم کاوه نه روسته به مشتری نه قسم نشی اخستلې.څکه چې اوس قسم اخستل بې فائدې دی.او بې فائدې څکه دې.چه هرکله قاضی بیع فسخ کړله.نو مشتری که د قسم خوړلو نه انکار هم اوکړې.او عیب باندې دهغه رضامندی ثابت هم شی.نو بیا هم دا فسخ نشی ختمیدلې.څکه چې دا فسخ ظاهراً او باطناً دواړه شان نافذ شوې ده.

وَلَا يَسْتَحْلِفُ الْمُشْتَرِي عِنْدَهُ بَعْدَ ذَلِكَ اوددې نه روسته د امام صاحب رحمه الله په نیز مشتری څخه به قسم نشی اخستلې. لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ، څکه چې دا مفید نه دې. وَأَمَّا عِنْدَهُمَا قَالُوا: اود صاحبینو رحمهما الله په نیز مشائخ فرمائی. يَجِبُ أَنْ يَتَّحِدَ الْجَوَابُ عَلَى هَذَا فِي الْفَصْلَيْنِ چې په دواړو صورتونوکې حکم برابر کیدل پکار دی. وَلَا يُؤَخَّرُ، اود واپس کولوپه حکم کې به تاخیر نشی کولې. لِأَنَّ التَّدَارُكَ مُمْكِنٌ عِنْدَهُمَا لِبُطْلَانِ الْقَضَاءِ. څکه چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز تدارك ممکن دې.په دې وجه حکم د قضاء باطل دې.

تشریح: دا خیال ساتل پکار دی.چه په دې دواړو صورتونوکې مذکوره توپیر صرف د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې.ګنی د صاحبینو رحمهما الله په نیز دواړه صورتونوکې یوحکم دې.یعنی په مسئله د پور کې د قرضخواه نه د قسم اخستلو نه بغیر به د پور مال وکیل ته ورکولې شی.او په مسئله د رد بالعیب( د معیب وینځې واپس کولو) کې به مشتری نه د قسم اخستلونه بغیر وینځه بائع ته ورکولې شی.د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه په دواړو صورتونوکې تدارك ممکن دې.څکه چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز د قاضی حکم صرف ظاهراً نافذ کیږی.او باطناً نه نافذ کیږی.نوکه د مشتری نه د قسم اخستلو نه بغیر معیب وینځه بائع ته ورکړې شوه.او بیا مشتری د قسم خوړلو نه ا نکار اوکړو.نود قاضی د فیصلې خطاء ښکاره کیدلو نه روسته به دا معیب وینځه بائع نه اخستلې شی.او مشتری ته به ورکولې شی.اود قاضی د بیع د فسخ فیصله به منسوخ کولې شی.څکه چې د قاضی حکم که ظاهراً نافذ وی.نودا منسوخ کیدلې شی.

وَقِيلَ الْأَصَحُّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ أَنْ يُؤَخِّرَ فِي الْفَصْلَيْنِ اوویلې شوی دی.چه د ابویوسف رحمه الله په نیز به دواړو صورتونوکې مؤخر کولې شی. لِأَنَّهُ يُعْتَبَرُ النَّظَرُ څکه چې انتظار معتبر دې. حَتَّى يَسْتَحْلِفَ الْمُشْتَرِي تردې چې مشتری نه قسم واخستلې شی. لَوْ كَانَ حَاضِرًا مِنْ غَيْرِ دَعْوَى الْبَائِعِ په دې شرط چې د بائع د دعوې نه بغیر هغه حاضر شوې وی. فَيَنْتَظِرُ لِلنَّظَرِ نود غور کاوه لپاره به انتظار کولې شی.

تشریح: او بعض مشائخ فرمائی.چه د امام ابویوسف رحمه الله په نیز اصح دادی. چې په دواړه صورتونو کې به تاخیر کولې شی.یعنی په مسئله د پور کې به قرضخواه نه د قسم اخستلونه بغیر وکیل ته د قرضه مال نشی ورکولې. او په مسئله د بیع کې مشتری نه قسم اخستلو نه بغیر به معیب وینځه بائع ته نشی واپس کولې.څکه چې امام ابویوسف رحمه الله په قرضدار او بائع باندې د شفقت لحاظ ساتی.اود شفقت تقاضا داده.که مشتری موجود وی.او معیب وینځه بائع اړخ ته واپس کول اوغواړی.نود مشتری نه د قسم اخستلو نه بغیر به معیب وینځه بائع اړخ ته نشی واپس کولې.اګرچه بائع د مشتری په عیب باندې د راضی کیدلو دعوه هم نه وی کړې.دغه ډول که مشتری غائب وی.نو بیا به هم د قسم اخستلو نه بغیر معیب وینځه بائع اړخ ته

نشي واپس کولې.چه د قاضي فيصله هم د باطليدلو نه محفوظ پاتې شي.او بائع باندې د شفقت لحاظ هم اوساتلې شي. دغه ډول په رومبنۍ مسئله کې د قرضخواه نه د قسم اخستلو نه بغير به د پور مال وکيل ته نشي ورکولې.ځکه چې په دې صورت کې به د قاضي فيصله هم د باطليدلو نه محفوظ پاتې شي.اود قرضدار په حق کې به د شفقت معامله هم ملحوظ او ساتلې شي.

**د موکل د لسو درهمو په ځائې د وکيل د نورو لسو درهمو خرچ کولو حکم**

قَالَ (وَمَنْ دَفَعَ إِلَى رَجُلٍ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ) که يو کس بل سړي ته لس درهمه ورکړل. يُنْفِقُهَا عَلَى أَهْلِهِ چې هغه دا دده په بچو باندې خرچ کړي. فَأَنْفَقَ عَلَيْهِمْ عَشَرَةً مِنْ عِنْدِهِ نوهغه د خپل اړخه لس درهمه هغوی باندې خرچ کړل. فَالْعَشَرَةُ بِالْعَشَرَةِ نودا لس درهمه به د هغه لس درهمو په عوض کې وی. لِأَنَّ الْوَكِيلَ بِالْإِنْفَاقِ وَكِيلٌ بِالشِّرَاءِ ځکه چې د خرچ کاوه وکيل د اخستلو وکيل دې. وَالْحُكْمُ فِيهِ مَا ذَكَرْنَاهُ وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ او په وکيل بالشراء کې حکم هم هغه دې.کوم چې موږ ذکرکړې او ثابت کړې دې. فَهٰذَا كَذٰلِكَ نو ددې حکم به هم هغه شان وی.

**تشريح: صورة المسئلة**۞يوسړی مثلاً حامد بل سړي مثلاً خالد ته لس درهم ددې لپاره ورکړل. چې خالد دا دراهم د حامد (موکل) اهل وعيال باندې خرچ کړي.نو خالد (وکيل) هغوی باندې د خپل اړخه خرچ کړل.نودا لس درهمه کوم چې وکيل د خپل اړخه خرچ کړي دی.د هغه دراهمو په مقابله کې شی.کوم چې وکيل (خالد) د موکل (حامد) نه اخستی وو.حاصل داچه وکيل ددې دراهمو په خرچ کولوکې تبرع کونکې نه دې.بلکه کوم دراهم چې ده د موکل نه اخستی وو.د هغې به مالك وی.

**دليله**۞ په دې مسئله کې د انفاق او خرچ کاوه وکيل په حقيقت کې د شراء او اخستلو وکيل دې.ځکه چې د موکل په اهل وعيال (او بال بچ) باندې خرچ کاوه لپاره به وکيل دداسې شئ په اخستلو مجبور وی.کوم چې د هغوی نفقه جوړيدلې شی.او کله کله وکيل سره د موکل ورکړې شوی دراهم موجود نه وی.نوهغه به ددې خبر محتاج وی.چه د اخستې شوی شئ ثمن د خپل مال نه اداکړي.اود موکل ورکړې شوی دراهم خپل خان سره اوساتی.نو په توکيل بالشراء کې دداسې قسمه استبدال اجازت وی. بهرحال وکيل بالانفاق په حقيقت کې وکيل بالشراء دې.اود وکيل بالشراء حکم دادې.که هغه ثمن د خپل اړخه اداکړي.نو هغه له موکل اړخ ته د رجوع کاوه اجازت وی.لکه څنګه چې وړاندې بيان کړې شوی دی.نو هم دغه ډول وکيل بالانفاق چې په حقيقت کې وکيل بالشراء دې.که دموکل په اهل وعيال باندې نې د خپل اړخه خرچ کړې وی.نو هغه دموکل د مال نه وصولولې شی.

وَقِيلَ هٰذَا اسْتِحْسَانٌ (1) او ونيلی شوی دی.چه دا استحسان دې. وَفِي الْقِيَاسِ لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ او قياس دادې.چه دده لپاره دا جائز نه دی. وَيَصِيرُ مُتَبَرِّعًا. اودا به متبرع شی.

**تشريح:** مرغيناني رحمه الله فرمائی.چه د بعض مشائخو د قول مطابق مذکوره حکم استحسان دې.ګنی قياس دادې.چه وکيل لپاره دا خبره جائز نه ده.چه وکيل د موکل ورکړې شوی لس درهمو په مقابله کې د خپل اړخه لس درهمه خرچ کړي.بلکه که ده د خپل اړخه لس درهمه خرچ کړل.نو هغه به په خرچ شوی دراهمو کې تبرع (او احسان) کونکې وی.او کوم دراهم چې ده د موکل نه اخستی دی.د هغې واپس کول به لازم وی.

وَقِيلَ الْقِيَاسُ وَالْاِسْتِحْسَانُ فِي قَضَاءِ الدَّيْنِ او ونيلی شوی دی.چه قياس او استحسان د پور ادا کاوه په صورت کې دې. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِشِرَاءٍ ځکه چې دا اخستل نه دی.

**تشريح:** بعض مشائخ فرمائی.چه دا قياس او استحسان د پور ادا کاوه په صورت کې جاری دی.يعنی که قرضدار خپل وکيل ته زر درهم ورکړل.چه دده قرضخواه ته نې اداکړي.خو وکيل ددې دراهمو په ځائې د

(1) القول الراجح هو قول الإستحسان كذا في نتائج الأفكار(١٢٧\٧)نقلاً عن القول الراجح (١٦٥\٢)



خپل اړخه نور زر درهم اداکړل.نو استحسان دادې.چه وکيل لپاره داسې کول جائز دی.او هغه به اداکړې شوی زر دراهم د موکل دمال نه وصول کوی.اود قياس تقاضه داده.چه وکيل د خپل اړخه زر درهم ادا کاوه سره تبرع کړې ده.او هغه ته د موکل د مال نه د واپس اخستلو اجازت نشته.ځکه چې پور اداکول د اخستلو په معنی کې نه دی.بلکه کوم دراهم نې چې موکل نه اخستې دی.د هغې واپس ورکول لازم دی.نو هرکله چې د وکيل د خپل اړخه اداکول د موکل د منشاء مطابق نه دی.نو وکيل به په دې ادا کولوکې متبرع وی.او هرکله چې وکيل په دې ادا کاوه کې متبرع دې.نوهغه لپاره به د وکيل د مال نه وصولول هم جائز نه وی.او په دې مسئله کې وجه د استحسان داده.چه د پور ادا کاوه وکيل (د هغه شئ کوم چې د موکل په ذمه وی) د دراهمو په عوض د اخستلو وکيل وی.او وکيل بالشراء چې کله څه اخستل اوکړي.او ثمن د خپل اړخه اداکړي. نو هغه لپاره موکل اړخ ته رجوع بالثمن جائز وی.نود پور ادا کاوه وکيل لپاره به هم ادا کړې شوی مال د موکل د مال نه وصولول جائز وی.

فَأَمَّا الْإِنْفَاقُ او پاتی شو خرچ کول، يَتَضَمَّنُ الشِّرَاءَ نو هغه شراء ته متضمن دې. فَلَا يَدْخُلَانِهِ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو په دې کې به قياس او استحسان نه داخليږي.والله اعلم بالصواب.

**تشريح:** او پاتی شو په بال بچ باندې خرچ کول.نو هغه اخستلو ته متضمن وی.يعنی د موکل د اړخه د خرچ کاوه امر په حقيقت کې د اخستلو امر وی.او اخستل بعينه هغه دراهمو سره نه متعلق کيږي.کوم دراهم چې موکل وکيل ته ورکړې دی.بلکه د اخستلو په وجه د وکيل په ذمه د هغه دراهمو مثل ثابتيږي.بيا وکيل لپاره دهغه دراهمو د رجوع اختيار ثابتيږي.او هرکله چې داسې وی.نو وکيل به قياساً هم تبرع کونکې نه وی.يعنی په مسئله د انفاق کې د قياس او استحسان حکم يوشان دې.يعنی د قياس او استحسان د دواړو د حکم مطابق وکيل بالانفاق د خپل مال په خرچ کاوه کې متبرع نه وی.هغه ته به د موکل د مال نه د وصولولو اختيار وی.والله اعلم بالصواب.

## باب عزل الوكيل

ژباړه: (دا) باب د وکيل معزول کولو (په بيان کې) دې.

**د وکالت نه د وکيل معزوله کول**

قَالَ (وَلِلْمُوَكِّلِ أَنْ يَعْزِلَ الْوَكِيلَ عَنِ الْوَكَالَةِ) موکل ته اختيار دې.چه خپل وکيل د وکالت نه معزول کړي. لِأَنَّ الْوَكَالَةَ حَقُّهُ ځکه چې وکالت د موکل حق دې. فَلَهُ أَنْ يُبْطِلَهُ نو هغه ته به د حق باطلولو اختيار وی.

**تشريح:** ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی.موکل ته اختيار دې.چه هغه خپل وکيل د وکالت نه معزول کړي.ځکه چې وکالت د موکل حق دې.او هر صاحب حق ته د خپل حق ختمولو اختيار وی.نو موکل ته به هم د خپل حق وکالت ختمولو او باطلولو پوره پوره اختيار وی.

إِلَّا إِذَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْغَيْرِ بِأَنْ كَانَ وَكِيلًا بِالْخُصُومَةِ بِطَلَبٍ مِنْ جِهَةِ الطَّالِبِ خو کله چې هغه سره د بل چا حق متعلق وی.په دې طريقه چې د مدعی په درخواست سره وکيل شوې وی. لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ ځکه چې په دې کې دغير حق باطلول دی.

**تشريح:** البته که وکالت سره د بل چا حق هم معلق وی.نو موکل ته به د هغه بل سړي د رضامندۍ نه بغير د وکالت ختمولو اختيار نه وی.مثلاً د قاضي په عدالت کې د مدعی په درخواست باندې مدعی عليه د خصومت وکيل ورکړې وی.نود مدعی د رضا مندۍ نه بغير به مدعی عليه لپاره ددې وکيل معزول کول جائز نه وی.ځکه چې ددې وکالت سره د مدعی حق متعلق دې.په دې طريقه چې مدعی به د قاضي په مجلس کې وکيل حاضروی.او هغه سره به مخاصمه کوی.او هغه باندې به حق ثابتوی.نو که مدعی عليه دا وکيل

معزول کړو. نو د مدعی حق به باطل شي. حالانکه د صاحب حق د رضامندئ نه بغير د هغه حق باطلول جائز نه دی. نو په دې صورت کې د مدعی علیه خپل وکیل د مدعی د رضامندئ نه بغير معزول کول به هم صحيح نه وی.

| وَصَارَ كَالْوَكَالَةِ الَّتِي تَضَمَّنَهَا عَقْدُ الرَّهْنِ اودا داسې شوه. لکه هغه وکالت کوم ته چې عقد رهن متضمن وی. |
|---|

**تشريح:** اودا داسې شوه. لکه هغه وکالت کوم ته چې عقد رهن متضمن وی. مثلاً راشد د شاهد نه زر روپۍ پور واخستلې. او خپل باغ ئې هغه سره رهن کيخودلو. خودا باغ د راهن اومرتهن دواړو په اتفاق سره د يو دريم عادل سړي مثلاً قاسم سره کيخودلې شو. په دې شرط سره چې د مرتهن په درخواست باندې راهن دا عادل سړې (قاسم) وکيل کړو. که په دوې (دوه) کاله کې دننه روپۍ ادا نکړې شوې. نو ته دا باغ خرڅ کړه. اود مرتهن روپۍ اداکړه. نودا وکالت د عقد رهن په ضمن کې دې. او دې سره د مرتهم حق متعلق دې. اوس که راهن د مرتهن د رضامندئ نه بغير دا وکيل معزول کول اوغواړي. نودا وکيل به نشي معزول کولې. او راهن ته به دا اختيار نه وی. چه هغه خپل وکيل معزول کړي.

### د معزول کيدلو خبر نه رسيدو پورې د وکالت او تصرف حکم

| قَالَ (فَإِنْ لَمْ يَبْلُغْهُ الْعَزْلُ نو که وکيل ته د معزول کاوه خبر اونه رسيدلو. فَهُوَ عَلَى وَكَالَتِهِ نو هغه به پخپل وکالت باندې پاتې وی. وَتَصَرُّفُهُ جَائِزٌ حَتَّى يَعْلَمَ) او دهغه تصرف به جائز وی. تردې چې هغه ته معلومه شی. لِأَنَّ فِي الْعَزْلِ إِضْرَارًا بِهِ څکه چې د هغه په معزول کاوه کې د وکيل ضرر دې. مِنْ حَيْثُ إِبْطَالُ وِلَايَتِهِ په دې اعتبار سره چې دده ولايت باطل شوې دې. أَوْ مِنْ حَيْثُ رُجُوعُ الْحُقُوقِ إِلَيْهِ يا په دې اعتبار سره چې حقوق به دده اړخ ته راجع کيږي. فَيَنْقُدُ مِنْ مَالِ الْمُوَكِّلِ وَيُسَلِّمُ الْمَبِيعَ نو وکيل به د موکل د مال نه ثمن اداکوی. او مبيع به حواله کوی. فَيَضْمَنُهُ نو هغه به ددې ضامن وی. فَيَتَضَرَّرُ بِهِ او په دې سره به ضرر اوچتوی. |
|---|

**دليل المسئلة**⑥ مرغيناني رحمه الله د مذکوره مسئلې لپاره دليل بيانوی. چه د وکيل په معزول کولوکې په دوې (دوه) وجو سره د وکيل ضرر دې. ① يودا چې کله موکل وکيل معزول کوی. نودې د هغه ولايت باطلوی. اود هغه تکذيب کوی. ګويا موکل د وکيل په دعوه کې تکذيب کوی. او داسې وائی. چه زما د معزول کاوه په وجه دده ولايت باطل شوې دې. اود يو انسان د هغه په قول کې تکذيب کول دا دهغه په حق کې ښکاره ضرر دې. نو ثابته شوه. چې وکيل د اطلاع نه بغير معزول کول وکيل په ضرر کې مبتلاکول دی. ② دويمه وجه داده. چه حقوق د عقد وکيل اړخ ته واپس کيږي. لکه وکيل که د اخستلو وکيل وی. نو هغه د موکل د مال نه ثمن اداکوی. اوکه وکيل بالبيع وی. نو وکيل به مبيع سپارلو. اوس که وکيل معزول کړې شو. او هغه ته د خپل معزول کيدلو علم اونشو. او ددې معزول کيدلو اعتبار هم اوکړې شو. نود عزل نه روسته چې دده د اړخه کوم تصرف هم کيږي. هغه به پخپله د وکيل لپاره واقع کيږي. اود ثمن ادا کاوه په صورت کې به د ثمن ضامن وی. اود مبيع سپارلو په صورت کې به د مبيع ضامن وی. او ددې ضمان په وجه به وکيل په ضرر کې اخته کيږي. بهرحال وکيل ته د اطلاع ور کاوه نه بغير که د وکيل معزول کيدلو اعتبار اوکړې شی. نو وکيل به په دوې (دوه) وجو سره ضرر کې مبتلاکيږي. او شرعاً ضرر لرې کولې شی. نود وکيل مذکوره ضرر لرې کاوه لپاره وکيل ته د اطلاع ور کاوه نه بغير د هغه معزول کول به معتبر نه وی.

| وَيَسْتَوِي الْوَكِيلُ بِالنِّكَاحِ وَغَيْرُهُ لِلْوَجْهِ الْأَوَّلِ او د دليل اول په وجه به د نکاح وکيل او ددې نه علاوه واړه برابر وی. وَقَدْ ذَكَرْنَا اشْتِرَاطَ الْعَدَدِ أَوِ الْعَدَالَةِ فِي الْمُخْبِرِ او په خبر ورکونکو کې مونږ د عدد يا عدالت شرط کيدل ذکر کړې دی. فَلَا نُعِيدُهُ هغه مونږ واپس نه ذکر کوو. |
|---|

**تشريح:** مرغيناني رحمه الله فرمائی. چه په مذکوره دوې (دوه) وجوه کې وجه اول عام ده. چه نکاح، طلاق، بيع او



شراء وغيره ټولو تصرفاتو ته عام ده. او وجه ثاني هغه تصرفاتو سره خاص ده. کوم کې چې حقوق وکيل اړخ ته راجع کيږي. او موکل اړخ ته نه واپس کيږي. لکه بيع او شراء. يعنی د وکيل د علم او اطلاع نه بغير، نه معزول کيدلوکې د وجه اول په وجه د نکاح، طلاق، او بيع وغيره واړه وکيلان برابر دی. يعنی د ټولو حکم دادې. چه وکيل ته د اطلاع ور کاوه نه بغير که دې معزول کړې شو. نو هغه به معزول نه وی.

مرغيناني رحمه الله فرمائی. که وکيل معزول کړې شو. او هغه ته علم اونشو. نو اوس چې کوم سړې هغه ته د معزول کيدلو خبر ورکوی. د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز هغه لپاره عدد يا عدالت شرط دې. يعنی که خبر ورکونکې يو وی. نو چې هغه عادل وی. اوکه عادل نه وی. نو دوې (دوه) سړی کيدل ضروری دی. ددې تفصيل په ،، ادب القاضی ،، کې تير شوې دې. ددې د واپس ذکر کاوه اړتيا نشته.

### د موکل په مرګ، ليونتوب او مرتد کيدو د وکالت حکم

| قَالَ (وَتَبْطُلُ الْوَكَالَةُ بِمَوْتِ الْمُوَكِّلِ او وکالت باطليږي. د موکل په مرګ سره، وَجُنُونِهِ جُنُونًا مُطْبِقًا دده هميشه طور باندې مجنون کيدلو سره، وَلَحَاقِهِ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا) اودده په مرتد کيدلو سره چې دارالحرب ته لاړشی. |
|---|

**تشريح:** ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائی. چه په يو څو صورتونو کې وکالت باطليږي. ① يودا چې مرګ واقع شي. ② دوهم داچه موکل شپه ورځ څليريشت ګنټې مجنون پاتې شی. ③ دريم داچه موکل مرتد شی. او دارالحرب ته لاړشی. او هلته کې رهائش اختيار کړي.

| لِأَنَّ التَّوْكِيلَ تَصَرُّفٌ غَيْرُ لَازِمٍ څکه چې توکيل يو غيرلازم تصرف دې. فَيَكُونُ لِدَوَامِهِ حُكْمُ ابْتِدَائِهِ نو ددې تصرف دوام لپاره ددې د ابتداء حکم دې. فَلَا بُدَّ مِنْ قِيَامِ الْأَمْرِ موکل د امر قائم پاتې کيدل ضروری دی. وَقَدْ بَطَلَ بِهَذِهِ الْعَوَارِضِ حالانکه ددې عوارضو په وجه د موکل امر باطل شوې دې. |
|---|

**تشريح:** توکيل يو غيرلازم تصرف دې. څکه چې لزوم د هغه شي نوم دې. د کوم وجود چې د دواړه ډلو په رضامندئ باندې موقوف وی. حالانکه په توکيل کې داسې نه ده. بلکه موکل او وکيل دواړوکې هريو ته د وکالت فسخ کاوه اختيار دې. چه هغه خپل ځان د وکالت نه منع کړي. او موکل لپاره دا اختيار دې. چه هغه وکيل د وکالت نه منع کړي. بهرحال توکيل غيرلازم تصرف دې. اود غيرلازم تصرف د بقاء او دوام لپاره هم هروخت د موکل موجود پاتې کيدل ضروری دی. او ذکر شوی عوارض يعنی مرګ، جنون مطبق، او مرتد کيدلو په وجه د موکل امر باطليږي. په دې وجه دې عوارضو سره وکالت هم باطليږي.

| وَشَرْطٌ أَنْ يَكُونَ الْجُنُونُ مُطْبِقًا او شرط ئې لګولې دې. چه جنون هميشه وی. لِأَنَّ قَلِيلَهُ بِمَنْزِلَةِ الْإِغْمَاءِ څکه چې معمولی شان جنون د بيهوشئ په مرتبه کې دې. وَحَدُّ الْمُطْبِقِ شَهْرٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ (١) اود جنون مطبق حد د امام ابويوسف رحمه الله په نيز يوه مياشت دې. اعْتِبَارًا بِمَا يَسْقُطُ بِهِ الصَّوْمُ په هغه باندې قياس کاوه سره په کوم چې روژه ساقطيږي. |
|---|

**تشريح: شرطية الجنون بالمطبق**⑥ مرغيناني رحمه الله فرمائی. چه مصنف د قدوری رحمه الله جنون د مطبق قيد سره مقيد کړې دې. يعنی داسې جنون وی. چه شپه ورځ هروخت موجود پاتې وی. څکه چې لږشان جنون چې دخه وخته پورې وی. او بيا ختميږي. هغه د اغماء او بې هوشئ په مرتبه کې وی. اود موکل د بې هوشئ په وجه وکالت نه باطليږي.

**حدالاطباق**⑥ مرغيناني رحمه الله اوفرمائيل. چه د جنون مطبق حد د حضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز يوه مياشت دې. اودا ئې په دې قياس کړې دې. که څوک د رمضان يوه مياشت مجنون پاتې شو. نود هغه د ذمې

---

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا فى نتائج الأفكار(٧\ج١٣٣) ومجمع الأنهر(٣٣٩\٣) والبحر الرائق (١٨٩) ومنحة الخالق(١٨٩) نقلاً عن القول الراجح (١٦٦\٢)

نه د رمضان روژه ساقطيږي.ځکه چې هرکله چې هغه د عباداتِ الهي د خطاب اهل نه دي.نود دنياوي معاملاتو اهل به هم نه وي.او هركله چې دده اهليت ختم شو.نو توكيل به ئي هم باطليږي.

وَعَنْهُ أَكْثَرُ مِنْ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ اود امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دادې.چه د يو ورځ او يوې شپې نه زيات وي. لِأَنَّهُ تَسْقُطُ بِهِ الصَّلَوَاتُ الْخَمْسُ ځکه چې دې سره پنځه مونځونه ساقطيږي. فَصَارَ كَالْمَيِّتِ نودا د مړي مثل شو.

تشريح: الرواية الثانية عن ابي يوسف رحمه الله ⊛ دحضرت امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دادې.چه د جنون مطبق حد يو ورځ اوشپه ده.يو روايت دادې.چه دجنون مطبق حد د يو ورځ او شپې نه زيات دې.يعنى كه مؤكل د يو ورځ او شپې نه زيات په جنون كي مبتلا پاتې شو.نود هغه وكالت به باطل وي.او وجه ددې داده.چه پيوسته يوه ورځ شپه د مجنون پاتې كيدلو په صورت كي پنځه واړه مونځونه دده د ذمې نه ساقطيږي.نو په دې موده كي مجنون پاتې كيدونكې سړې د مړي پشان دې.او هركله چې دا مجنون د مړي پشان شو.نود وكالت اهل (او قابل) به هم نه وي.او هركله چې د وكالت اهل پاتې نشو.نود هغه وكالت به هم باطل وي.امام محمد رحمه الله فرمائي.چه د جنون مطبق حد او موده يو كال دې.ځکه چې د پوره يو كال مجنون پاتې كيدونكې سړي نه واړه عبادتونه مونځ، روژه، زكاة، ساقطيږي.نود جنون مطبق حد احتياطاً د يو كال مودې سره اندازه كړې شوې دې.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: اوامام محمد رحمه الله فرمائي. حَوْلٌ كَامِلٌ چې جنون مطبق پوره يو كال دې. لِأَنَّهُ يَسْقُطُ بِهِ جَمِيعُ الْعِبَادَاتِ ځکه چې دې سره واړه عبادتونه ساقطيږي. فَقُدِّرَ بِهِ احْتِيَاطًا. نو ددې نه احتياطاً اندازه كړې شوې ده. قَالُوا: مشائخ فرمائي. الْحُكْمُ الْمَذْكُورُ فِي اللَّحَاقِ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ[1] چې دارالحرب ته د تللو په سلسله كي چې كوم حكم ذكر شوې دې.دا د ابوحنيفه رحمه الله قول دې. لِأَنَّ تَصَرُّفَاتِ الْمُرْتَدِّ مَوْقُوفَةٌ عِنْدَهُ ځکه چې د هغوى په نيز د مرتد تصرفات موقوف وي. فَكَذَا وَكَالَتُهُ نو دغه ډول به د هغه وكالت هم موقوف پاتې وي. فَإِنْ أَسْلَمَ نَفَذَ نوكه هغه مسلمان شو.نو تصرف به نافذ وي. وَإِنْ قُتِلَ اوكه قتل كړې شو. أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ يا دارالحرب ته لاړو. بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو وكالت به باطل وي.

تشريح: وقوف وكالة المرتد قول ابي حنيفة رحمه الله ⊛ مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه مشائخ د احنافو رحمهم الله فرمائيلي دي.چه د مرتد دارالحرب ته د تللو كوم حكم چې په متن كي ذكر كړې شوې دې.هغه دامام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.ځکه چې د حضرت امام صاحب رحمه الله په نيز د مرتد واړه تصرفات موقوف وي.نود هغه وكالت به هم موقوف وي.د موقوف پاتې كيدلو مطلب دادې كه مرتد مسلمان شو.نود هغه د توكيل هغه تصرف كوم چې هغه د ردت په زمانه كي كړې وو.هغه به نافذ وي.اوكه په حالت د ارتداد كي قتل كړې شو.يا دارالحرب ته لاړلو.نود هغه وكالت به باطل وي.

فَأَمَّا عِنْدَهُمَا تَصَرُّفَاتُهُ نَافِذَةٌ بهرحال د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مرتد تصرفات نافذ كيږي. فَلَا تَبْطُلُ وَكَالَتُهُ إِلَّا أَنْ يَمُوتَ نود هغه وكالت به باطل نه وي.خودا چې مړشي. أَوْ يُقْتَلَ عَلَى رِدَّتِهِ يا پخپل ردت باندې قتل كړې شي. أَوْ يُحْكَمَ بِلَحَاقِهِ يا دهغه دارالحرب سره د ملحق كيدلو حكم اولګولې شي. وَقَدْ مَرَّ فِي السِّيَرِ اودا اختلاف په كتاب السير كي ذكر كړې شوې دې.

تشريح: قول الصاحبين ⊛ او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه د مرتد واړه تصرفات نافذ دي.نود مرتد وكالت به باطل نه وي.البته كه مرتد مړشو.يا هغه په ردت باندې قتل كړې شو.نو بلاشبه دهغه وكالت به باطل وي.ددې اختلاف تفصيل په كتاب السير كي تير شوې دې.

[1]) القول الراجح هو هذا قول الأمام الأعظم رحمه الله كذا في ملتقى الأبحرمع المجمع (۳۳۹/۳) ونتائج الأفكار (۱۳٤/۷) نقلاً عن القول الراجح (۱٦٦/۲)



وَإِنْ كَانَ الْمُوَكِّلُ امْرَأَةً اوكه مؤكل ښځه وي. فَارْتَدَّتْ بيا هغه مرتده شوه. فَالْوَكِيلُ عَلَى وَكَالَتِهِ حَتَّى تَمُوتَ نو وكيل به پخپل وكالت باندې پاته وي.ترڅو چې ښځه مړه شي. أَوْ تَلْحَقَ بِدَارِ الْحَرْبِ يا دارالحرب ته لاړه شي. لِأَنَّ رِدَّتَهَا لَا تُؤَثِّرُ فِي عُقُودِهَا عَلَى مَا عُرِفَ ځکه چې د ښځې مرتده كيدل، دهغې په عقودو كي نه مؤثر كيږي.لكه چې معلوم شوى دى.

تشريح: اوكه مؤكل ښځه وي.او هغه مرتده شوه.نو بالاجماع به وكيل پخپل وكالت باندې پاته وي.يعنى د مؤكلې ښځې په مرتد كيدلو سره وكالت نه باطليږي.البته كه ښځه مړه شوه.يا دارالحرب ته لاړله.(او هلته كې اوسيدله).نود هغې وكالت به بلاشبه باطل وي.او وجه ددې داده.چه ښځه د مرتد كيدلو په وجه نشى قتلولې.په دې وجه ددې مرتد كيدل د هغې په عقودكي نه مؤثر كيږي.نود ښځې په مرتد كيدلو سره به د هغې د وكالت تصرف هم نه باطليږي.بلكه د هغې تصرف به دمخكې پشان پاته پاتې وي. خو كه هغه مړه شوه.نوپه مرګ سره، اوكه دارالحرب ته لاړله.نو دارالحرب والا خلګو سره ملاويدلو سره به دهغې وكالت باطليږي.

### د وكالت باطليدو څينصورتونه

قَالَ (وَإِذَا وَكَّلَ الْمُكَاتَبُ اوكله چې مكاتب وكيل كړلو. ثُمَّ عَجَزَ بيا دې عاجزه شو. أَوِ الْمَأْذُونُ لَهُ يا ماذون له وكيل كړلو. ثُمَّ حُجِرَ عَلَيْهِ بيا هغه محجور شو. أَوِ الشَّرِيكَانِ يا دوې (دوه) شريكانو وكيل كړو. فَافْتَرَقَا بيا دوى جلا شول. فَهَذِهِ الْوُجُوهُ تُبْطِلُ الْوَكَالَةَ عَلَى الْوَكِيلِ نودا وجوه وكيل باندې وكالت باطلوى. عَلِمَ أَوْ لَمْ يَعْلَمْ) وكيل ته علم وي.اوكه نه وي.

تشريح: كه مكاتب يوكس وكيل كړو.او بيا مكاتب د بدل كتابت ادا كاوه نه عاجز شو .يعنى بيا رقيق (غلام) شو.يا عبد ماذون له يوكس وكيل كړو.بيا مولا ده لره د تجارت نه منع كړو.يا په دوې (دوه) شريكانوكي يوكس څوك وكيل كړو.بيا دوى دواړه (شريكان) جلا شو.يعنى شركت پاته پاتې نشو.نو په دې ټولو صورتونوكي به وكالت باطل وي.وكيل ته كه ددې څيزونو علم وي.اوكه نه وي.

لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ بَقَاءَ الْوَكَالَةِ يَعْتَمِدُ قِيَامَ الْأَمْرِ ځکه مونږ ذكر كړې دى.چه د وكالت بقاء په قيام د امر باندې موقوف ده. وَقَدْ بَطَلَ بِالْحَجْرِ وَالْعَجْزِ وَالِافْتِرَاقِ اود مؤكل امر په عجز، حجر ،او افتراق سره باطليږي.

تشريح: ځكه مونږ وړاندې ذكر كړې دى.چه د وكالت بقاء د مؤكل د حكم په بناء باندې موقوف ده.او په مذكوره صورتونوكي دمؤكل حكم باطليږي.يعنى د عبد ماذون له حكم د حجر (يعنى د تجارت نه د بنديدلو) په وجه،اود مكاتب حكم د عجز په وجه،او په شريكينوكي د يوكس حكم د افتراق (او جداكيدلو) په وجه باطليږي.

وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْعِلْمِ وَعَدَمِهِ اود علم او غيرعلم په منځ كي توپير ځكه نشته. لِأَنَّ هَذَا عَزْلٌ حُكْمِيٌّ چې دا عزل حكمي دې. فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْعِلْمِ كَالْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا بَاعَهُ الْمُوَكِّلُ نو دا به د وكيل په علم باندې موقوف نه وي.لكه وكيل بالبيع كله چې مؤكل مبيع خرڅ كړلو.

تشريح: او په دې صورتونوكي د وكيل په علم او عدم علم كي توپير ځكه نه دې شوې.چه په دې صورتونو كي د وكيل معزول كيدل، امرحكمي او غيراختيارى دى.يعنى په دې صورتونوكي د معزول كيدلو نه بغير وكيل معزول كيږي.اود وكيل علم (او خبريدل) عزل قصدى او ارادى لپاره شرط دى.د عزل حكمي لپاره شرط نه دى.يعنى كه مؤكل بالقصد او بالاختيار خپل وكيل معزول كړې.نود معزول كيدلو لپاره د وكيل خبريدل ضرورى دى.اوكه د مؤكل د اختيار او ارادې نه بغير وكيل معزول شو.نود وكيل خبريدل ضرورى دى.بهرحال په ذكر شوى صورتونوكي د وكيل عزل حكمي او غيراختيارى دې.نودا معزول كيدل به د وكيل

په حکم باندې موقوف نه وي.بلکه وکیل به بهرحال معزول کیږي.هغه ته که ددې علم وي اوکه نه وي.لکه مثلاً یو سړي وکیل بالبیع وي.او بیا مؤکل هم هغه شئ پخپله خرڅ کړي.دکوم د خرڅولو نې چې وکیل کړې وو.نو وکیل به معزول وي.که هغه ته معلومه وي.اوکه معلومه نه وي.ځکه چې د مؤکل ددې شئ د خرڅولو نه روسته د وکیل د تصرفاتو محل پاته پاتې نشو.نود وکیل وکالت به هم پاته نه پاتې کیږي.

## د وکیل په مرګ یا لیونتوب باندې د وکالت حکم

قَالَ: (وَإِذَامَاتَ الْوَكِيلُ) اوکله چې وکیل مړشی.(أَوْجُنَّ جُنُونًامُطْبِقًا) یا ده ته جنون مطبق اوشی.(بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ) نو وکالت به باطل وي.لِأَنَّهُ لَايَصِحُّ أَمْرُهُ بَعْدَ جُنُونِهِ وَمَوْتِهِ په دې وجه د وکیل مامور کیدل دده د مجنون کیدلو اود مرګ نه روسته صحیح نه دی.(وَإِنْ لَحِقَ بِدَارِالْحَرْبِ مُرْتَدًّا) اوکه وکیل مرتد شی.دارالحرب ته لاړشی.(لَمْ يَجُزْلَهُ التَّصَرُّفُ إِلَّاأَنْ يَعُودَمُسْلِمًا) نود هغه تصرف جائز نه دې.خودا چې هغه مسلمان شی.او واپس راشی (نو بیا دده تصرف صحیح کیږي).

تشریح: په تیرو شوو صفحاتو کي هغه عوارض بیان کړې شوی وو.کوم چې د مؤکل د اړخه وکالت باطلونکی وو.اوس دلته د هغه عوارضو بیان دې.کوم چې د وکیل د اړخه وکالت باطلوی.لکه فرمائی.که وکیل مړشو.یا ده ته جنون مطبق اوشو.نو وکالت به باطلیږي.دلیل دادې.چه د وکیل په مجنون کیدلو.او مرګ نه روسته دده مامور کیدل او وکیل کیدل صحیح نه دی.حالانکه دوکالت د صحت لپاره دا خبره ضروري ده.چه د وکیل مامور کیدل برابر صحیح پاته وي.نو هرکله چې د جنون مطبق او مرګ نه روسته د وکیل مامور کیدل صحیح پاتې نشو.نو وکالت به هم پاته نه پاتې کیږي.بلکه باطل به وي.نو په حکم د وکالت به دده تصرف کول جائز نه وي.البته که دې د دارالحرب نه دارالاسلام ته مسلمان راواپس شو.یعنی که وکیل مرتد دوباره مسلمان شو اود دارالحرب نه دارالاسلام ته واپس راغی.نو په حکم د وکالت به دده تصرف جائز وي.

قَالَ: مرغینانی رحمه الله فرمائی.وَهَذَاعِنْدَ مُحَمَّدٍ، چې دا د امام محمد رحمه الله په نیز دی.فَأَمَّا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَاتَعُودُ الْوَكَالَةُ(¹) اود ابویوسف رحمه الله په نیز دده وکالت نه واپس کیږي.لِمُحَمَّدٍ أَنَّ الْوَكَالَةَ إِطْلَاقٌ د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې چه وکالت اطلاق دې.لِأَنَّهُ رَفْعُ الْمَانِعِ. ځکه چې هغه مانع لرې کول دی.أَمَّا الْوَكِيلُ او پاتې شو وکیل، يَتَصَرَّفُ بِمَعَانٍ قَائِمَةٍ بِهِ نودې د داسې معانو په وجه تصرف کوی ،کوم چې دده سره قائمیږي.وَإِنَّمَا عَجَزَ بِعَارِضِ اللَّحَاقِ لِتَبَايُنِ الدَّارَيْنِ،او وکیل د تباین دارین په وجه د عارضي لحاق په وجه عاجز شو.فَإِذَا زَالَ الْعَجْزُ نو هرکله چې عجز زائل شو.وَالْإِطْلَاقُ بَاقٍ او اطلاق پاته دې.عَادَوَكِيلًا. نو هغه واپس وکیل شو.وَلِأَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ إِثْبَاتُ وِلَايَةِ التَّنْفِيذِ،اود ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه توکیل د ولایت تنفیذ ثابتیدل دی.لِأَنَّ وِلَايَةَ أَصْلِ التَّصَرُّفِ بِأَهْلِيَّتِهِ ځکه چې د وکیل د اصل تصرف ولایت پخپل لیاقت سره حاصل دې.وَوِلَايَةُ التَّنْفِيذِ بِالْمِلْكِ اود نافذ کاوه ولایت ملك سره حاصل دې.وَبِاللَّحَاقِ لَحِقَ بِالْأَمْوَاتِ او دارالحرب ته په تللو سره مړو خلګو سره شامل شوې دې. وَبَطَلَتِ الْوِلَايَةُ او چې ولایت باطل شو.فَلَاتَعُودُ كَمِلْكِهِ فِي أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ نودا به نه واپس کیږي.لکه چې په ام ولد او مدبر کي دده ملکیت نه واپس کیږي.

تشریح: المذهبان في المسئلة◉ ①مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه دوباره مسلمانیدل او واپس راتګ و په صورت کي د وکیل تصرف جائز کیدل د حضرت امام محمد رحمه الله مذهب دې.

دلیله◉ د حضرت امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه وکالت د تصرف د اطلاق او اجازت نوم دې.ځکه چې

---

¹) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في نتائج الأفكار(۱۳۸\۷) والعناية (۱۳۸\۷) وردالمحتار (۲٦٤\۱٤) والبحر(۱۹۰\۷) نقلاً عن القول الراجح(۱٦۷\۲)



وکالت د مانع او رکاوټ لرې کاوه نوم دې.یعنی وکیل ته د مؤکل په معاملاتوکي د تصرف کاوه نه شرعاً ممانعت وو.خو کله چې مؤکل وکیل جوړ کړو.او ممانعت ئې لرې کړو.نو وکیل لپاره اجازت حاصل شو.اود تصرف کاوه لپاره د وکیل لاس کلاؤ شو.او پاتې شو وکیل نو دې د داسې معانیو په وجه تصرف کوی.کومې معانې چې دده دذات سره قائم دی.یعنی دده آزاد، عاقل، بالغ کیدل.حاصل داچه په ذریعه د وکالت د مؤکل د اړخه وکیل ته د تصرف کاوه اجازت هم حاصل شو.او وکیل د حریت، عقل او بلوغ په وجه د تصرف کاوه اهل هم دې.خو وکیل د یو عارض په وجه تصرف کاوه نه عاجز شوې وو.او هغه عارض د وکیل دار الحرب ته تلل وو.ځکه چې په دارالاسلام او دارالحرب کي تباین دې.نود تباین دار په وجه وکیل د تصرف کاوه نه عاجز شو.خو کله چې مرتد وکیل مسلمان شو او دارالاسلام ته واپس راغی.نو عجز عن التصرف زائل شو.اود مؤکل د اړخه اجازت برابر قائم دې.نو هرکله چې د مؤکل د اړخه اجازت قائم دې او عجز زائل شو.نو وکیل به تیرشوی وکالت باندې واپس کیږي.اود وکیل په حیثیت به مؤکل لپاره د تصرف اجازت وي.

② د امام ابویوسف رحمه الله په نیز باطل شوې وکالت نه واپس کیږي اګرچه وکیل دوباره مسلمان شی.او واپس راشی.

دلیله◉ د حضرت امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې چه وکالت د تصرف نوم نه دې.بلکه د تصرف نافذولو د ولایت نوم، وکالت دې.ځکه چې وکیل ته د اصل تصرف لیاقت حاصل دې.نو وکیل د مؤکل په مال کي د تصرف لیاقت لري.خو هغه لپاره دا تصرف جائز نه دې.اود تصرف نافذولو ولایت هغه وخت حاصلیږي کله چې هغه ددې تصرف مالك وي.نو هرکله مؤکل خوك وکیل کړو.نو وکیل ددې تصرف مالك شو.بیا کله چې وکیل دارالحرب کي ګډ شو.نو هغه مړو سړوکي ګډ شو.او کله چې وکیل په مړو سړوکي ګډ شو.نود هغه ملك باطل شو.ځکه چې مړ سړې د مالك جوړیدلو اهلیت نه لرې.او هرکله چې د وکیل ملك باطل شو.نود هغه ولایت هم باطل شو.یعنی د تصرف نافذولو ولایت پاتې نشو.او باطل شوې شئ نه واپس کیږي.نو ځکه به د تصرف نافذولو ولایت نه واپس کیږي.او مسلمانیدل او دارالاسلام ته واپس راتګ و سره به د وکیل مخکنې وکالت نه حاصلیږي.لکه چې په ام ولد او مدبر کي دده ملکیت نه واپس کیږي.یعنی که مذکوره وکیل مرتد شو.او دارالحرب کي ګډ شو.یعنی قاضی دهغه دحربی کیدلو حکم ورکړو.نود هغه ام ولد وینځه او مدبر غلام آزاد شول.ځکه چې مدبر او ام ولد د مولا په مرګ سره آزادیږي.اود مولا په دارالحرب کي شاملیدل هم د مرګ برابر دی.ځکه به دوی دواړه آزادیږي.اوس که مذکوره مرتد وکیل مسلمان شو او دارالاسلام ته راواپس شو.نو دده ام ولد او مدبر به دوباره دده په ملکیت کي نه راځي.دغه ډول به دده وکالت هم نه راواپس کیږي. یعنی ده ته به د تصرف نافذولو ولایت نه حاصلیږي.

وَلَوْعَادَ الْمُوَكِّلُ مُسْلِمًا اوکه مؤکل مسلمان شو.وَقَدْ لَحِقَ بِدَارِالْحَرْبِ مُرْتَدًّا او واپس راغی.حالانکه دې مرتد شوې وو.اود دارالحرب خلګو سره شامل شوې وو.لَاتَعُودُ الْوَكَالَةُ فِي الظَّاهِرِ. نود ظاهرالروایة مطابق به وکالت نه واپس کیږي.

تشریح: الروایة الاولی عن محمد رحمه الله◉ مرغینانی رحمه الله فرمائی.که مؤکل مرتد شی او دارالحرب کي ګډ شی.او بیا مسلمان شی. او دارالاسلام ته راواپس شی.نود ظاهرالروایة مطابق به دده وکالت نه راواپس کیږي.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهَا تَعُودُ كَمَا قَالَ فِي الْوَكِيلِ. اود امام محمد رحمه الله نه روایت دې چه وکالت به واپس کیږي.لکه ځنګه چې امام محمد رحمه الله د وکیل په اړه کي فرمائیلي وو.

تشریح: الروایة الثانیة عن محمد رحمه الله اود امام محمد رحمه الله نه روایت دې چه د مؤکل توکیل به هم راواپس کیږي.لکه ځنګه چې وکیل کي ددوی قول دې.یعنی نوادر کي د امام محمد رحمه الله روایت دې.که مؤکل د دارالحرب نه مسلمان راواپس شو.نو دده وکالت به راواپس کیږي.یعنی دده مقرر شوې وکیل به د مخکې پشان وکیل پاته وي.لکه که وکیل مرتدشی.او دارالحرب کي ګډ شی.بیا مسلمان شی.او دارالاسلام ته

وكالت باندې پاته پاتې وي.

راواپس شي.نود امام محمد رحمه الله په نيز هغه د مخکې پشان وکالت باندې پاته پاتې وي.
خلاصة المتن ◉ د موکل په اړه کې د امام محمد رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دی.يو روايت د نوادر دې.چه
ددې روايت مطابق د وکيل او موکل په منځ کې توپير نشته.تردې چې د دارالحرب نه د دواړو مسلمان
راواپس کيدل باندې وکالت هم راواپس کيږي.

وَالْفَرْقُ لَهٗ عَلَى الظَّاهِرِ او د ظاهرالرواية مطابق د امام محمد رحمه الله په قول کې توپير دادې.أَنَّ مَبْنَى الْوَكَالَةِ فِيْ
حَقِّ الْمُوَكِّلِ عَلَى الْمِلْكِ وَقَدْ زَالَ چې د وکالت بنا (بنياد) د موکل په حق کې داسې معنی باندې دې.کومه
چې دده سره قائم ده.وَفِيْ حَقِّ الْوَكِيْلِ عَلٰى مَعْنًى قَائِمٍ بِهٖ وَلَمْ يَزَلْ بِاللَّحَاقِ او دارالحرب ته په تللو سره هغه
معنی نه ده زائل شوې.

**تشريح:** **وجه الفرق بين المسئلتين في ظاهرالرواية** ◉ دوهم روايت د ظاهرالرواية دې.چه ددې مطابق په وکيل او
موکل کې توپير دې.چه دامام محمد رحمه الله په نيز که وکيل دارالحرب کې د شامليدلو نه روسته مسلمان
راواپس شي.نود امام محمد رحمه الله په نيز د مخکې پشان مخکنی وکالت باندې پاته پاتې کيږي.لنډيز د
توپير داکه وکيل دارالحرب کې شامليدلو نه روسته مسلمان راواپس شو.نو وکالت به راواپس کيږي.اوکه
موکل مسلمان راواپس شو.نو وکالت به نه راواپس کيږي.د ظاهرالرواية مطابق د امام محمد رحمه الله لپاره وجه
د توپير داده.چه د موکل په حق کې د وکالت بنا (بنياد) په ملك دې.يعنی موکل ته د وکيل کاوه حق ځکه
دې.چه موکل هم دهغه شي مالك دې.د کوم په اړه کې ئې چې وکيل، وکيل کړې دې.خو کله چې موکل
مرتدشو.او دارالحرب کې ملاؤ شو.او قاضي دده په دارالحرب کې د شامليدلو حکم هم ورکړو.نود موکل
ملك زائل شو.او هرکله چې د موکل ملك زائل شو.نو وکالت هم قطعي طور باندې باطل شو.او باطل شوې
شي نه راواپس کيږي. په دې وجه به د موکل دا وکالت هم نه راواپس کيږي.اود وکيل په حق کې د وکالت بنا
(بنياد) په داسې معنی دې.کومه چې وکيل سره قائم ده.يعنی د وکيل آزاد، عاقل، بالغ کيدل.اودا معنی په
دارالحرب کې شامليدلو سره نه زائل کيږي.نو هرکله چې دا معنی دارالحرب کې شامليدلو سره نه زائل
کيږي.نوبه دارالحرب کې د شامليدلو باوجود هم د وکيل د تصرف محل پاته پاتې دې.خود عارض يعنی
دارالحرب کې د شامليدلو په وجه د تصرف کاوه نه عاجز شو.خو کله چې د دارالحرب نه په واپس راتګ و
باندې دا عارض زائل شو.نو داسې شوه.لکه چې دا عارض نه وو.بهرحال هرکله چې دا عارض زائل شو. او
د ,,کان لم يکن،، په درجه کې شو.نو وکالت به راواپس کيږي.او وکيل ته به د وکيل په حيثيت د تصرف کاوه
اجازت وي.

### د وکيل جوړولو نه روسته پخپله کار کولو سره د وکالت حکم.

قَالَ (وَمَنْ وَكَّلَ اٰخَرَ بِشَيْءٍ) فرمايي که يوکس بل څوك دڅه کار وکيل کړو. ثُمَّ تَصَرَّفَ بِنَفْسِهٖ فِيْمَا وَكَّلَ بِهٖ بيا د
کوم کارنې چې وکيل کړې وو.هغه ئې پخپله اوکړو. بَطَلَتِ الْوَكَالَةُ نو وکالت باطل شو. وَهٰذَا اللَّفْظُ يَنْتَظِمُ وُجُوْهًا
:دا عبارت ډيرو صورتونو ته ګډ دې. مِثْلَ أَنْ يُّوَكِّلَهٗ بِإِعْتَاقِ عَبْدِهٖ مثلاً د خپل غلام آزادولو لپاره ئې وکيل
کړو. أَوْ بِكِتَابَتِهٖ يا ئې د غلام مکاتب کاوه لپاره وکيل کړو. فَأَعْتَقَهٗ بيا موکل پخپله دا آزاد کړو. أَوْ كَاتَبَهُ
الْمُوَكِّلُ بِنَفْسِهٖ يا ئې مکاتب کړو. أَوْ يُوَكِّلَهٗ بِتَزْوِيْجِ امْرَأَةٍ يا ئې دې د يوې معينې ښځې سره د نکاح کاوه دپاره، أَوْ
بِشِرَاءِ شَيْءٍ يا د يومعين شي اخستلو لپاره وکيل کړو. فَفَعَلَهٗ بِنَفْسِهٖ بيا موکل دا کار پخپله اوکړو. أَوْ يُوَكِّلَهٗ بِطَلَاقِ
امْرَأَتِهٖ يائې خپلې ښځې ته د طلاق ور کاوه لپاره وکيل کړې وو. فَطَلَّقَهَا الزَّوْجُ ثَلَاثًا بيا ميره موکل هغې ته درې
طلاقه ورکړل. أَوْ وَاحِدَةً يا ئې يو طلاق ورکړو. وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا اود هغې عدت پوره شو. أَوْ بِالْخُلْعِ يا ئې دخلع کاوه
وکيل کړې وو. فَخَالَعَهَا بِنَفْسِهٖ بيا هغې سره موکل پخپله خلع اوکړله.

**تشريح:** صورت د مسئلې دادې.که يو سړی بل څوك دڅه کار لپاره وکيل کړو.بيا د کوم کار لپاره ئې چې



وکيل کړې وو.موکل هغه پخپله اوکړو.نو وکالت باطل شو. مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د قدوري دا متن
ډيرو صورتونو ته ګډ دې.مثلاً ① دخپل غلام آزادولو لپاره ئې وکيل کړو.بيا موکل دا پخپله آزاد کړو. ②
د خپل غلام مکاتب کاوه لپاره ئې وکيل کړو.بيا موکل پخپله دا مکاتب کړو. ③ ددې خبرې لپاره ئې
وکيل کړو.چه دې يوې معينې ښځې سره د موکل نکاح اوکړي.خو موکل پخپله دغه ښځې سره نکاح
اوکړله. ④ د يو معين شي اخستلو لپاره ئې وکيل کړو.بيا موکل دغه شي پخپله واخستلو. ⑤ (د موکل)
خپلې ښځې ته د طلاق ور کاوه لپاره ئې وکيل کړو.بيا موکل پخپله هغې ته درې طلاقه ورکړل.يا ئې يو
طلاق ورکړو.اود هغې عدت تير شو. ⑥ (د موکل) خپلې ښځې سره د خلع کاوه لپاره ئې وکيل کړو.بيا
موکل پخپله هغې ته خلع ورکړله. نو په دې ټولو صورتونو کې به وکالت باطل وي.او وکيل ته به په حکم د
وکالت په دې کارکې د تصرف کاوه اختيار نه وي.دکوم چې دې وکيل جوړ کړې شوې وو.

لِأَنَّهٗ لَمَّا تَصَرَّفَ بِنَفْسِهٖ ځکه هرکله چې موکل پخپله تصرف اوکړو. تَعَذَّرَ عَلَى الْوَكِيْلِ التَّصَرُّفُ نو وکيل باندې
تصرف کول متعذر شو. فَبَطَلَتِ الْوَكَالَةُ،نو وکالت باطل شو. حَتّٰى لَوْ تَزَوَّجَهَا بِنَفْسِهٖ تردې که موکل دې ښځې سره
پخپله نکاح اوکړله. وَأَبَانَهَا او هغه ئې بائنه کړله. لَمْ يَكُنْ لِلْوَكِيْلِ نو وکيل ته دا اختيار نشته. أَنْ يُّزَوِّجَهَا مِنْهُ
چې د موکل هغې سره نکاح اوکړي. لِأَنَّ الْحَاجَةَ قَدِ انْقَضَتْ، ځکه چې حاجت پوره شو. بِخِلَافِ مَا إِذَا تَزَوَّجَهَا الْوَكِيْلُ
ددې په خلاف کله چې وکيل دې ښځې سره نکاح اوکړله. وَأَبَانَهَا او هغه ئې بائنه کړله. لَهٗ أَنْ يُّزَوِّجَ الْمُوَكِّلَ نو
وکيل ته دا اختيارشته.چه موکل سره د هغې نکاح اوکړي. لِبَقَاءِ الْحَاجَةِ ځکه چې حاجت پاته دې.

**تشريح:** په ټولو صورتونو کې د وکالت باطليدلو دليل دادې.چه کله موکل پخپله تصرف اوکړو.نو وکيل لپاره
تصرف کول متعذر شو.ځکه چې د موکل د تصرف کاوه نه روسته د وکيل تصرف کول تحصيل حاصل ته
مستلزم دی.حالانکه تحصيل دحاصل ممتنع دی.بهرحال وکيل باندې تصرف کول متعذر شو.نو وکالت
باطل شو.ځکه چې د وکيل د تصرف کاوه نوم وکالت دې.

مرغيناني رحمه الله په دې مسئله باندې تفريع کولوکې فرمائي.که موکل پخپله دغه ښځې سره نکاح اوکړله.د
کومې ښځې سره ئې چې د نکاح کاوه لپاره وکيل کړې وو.او بيا موکل دغه ښځې ته طلاق ورکړو.او بائنه
ئې کړله.نو وکيل ته به دا اختيار نه وي.چه دې موکل سره دوباره ددغه ښځې نکاح اوکړي.ځکه چې د
موکل پخپله دغه ښځې سره نکاح کاوه سره د هغه اړتيا پوره شوې دې.او هرکله چې د موکل هغه اړتيا پوره
شو.د کوم د پوره کاوه لپاره ئې چې وکل کړې وو.نو وکالت باطل شو.او هرکله چې وکالت باطل شو.نو
وکيل ته به د دوباره نکاح کاوه هيڅ اختيار نه وي.ددې په خلاف که وکيل پخپله دغه ښځې سره نکاح
اوکړله.او هغه بائنه کړله.نو وکيل ته اختيار شته.چه د موکل دغه ښځې سره نکاح اوکړي.ځکه چې دغه
ښځې سره نکاح کاوه لپاره د موکل اړتيا پاته دې.اوهرکله چې د موکل اړتيا پاته دی.نو وکالت به هم پاته
وي.او هرکله چې وکالت پاته دې.نو وکيل ته به هم اختيار وي.چه د موکل سره ددې نکاح اوکړي.

وَكَذَا لَوْ وَكَّلَهٗ بِبَيْعِ عَبْدِهٖ او دغه ډول که دخپل غلام خرڅولو وکيل ئې کړو. فَبَاعَهٗ بِنَفْسِهٖ،بيا ئې هغه پخپله خرڅ
کړو. فَلَوْ رُدَّ عَلَيْهِ بِعَيْبٍ بِقَضَاءِ قَاضٍ،نو که غلام دڅه عيب په وجه د قاضي په حکم موکل باندې واپس کړې شو.

**تشريح:** **صورة المسئلة** ◉ دغه ډول به وکالت په دې صورت کې باطليږی.کله چې يوکس بل څوك د خپل غلام
خرڅولو وکيل کړي.او بيا پخپله دا خرڅ کړي.بيا که دا غلام د څه عيب په وجه د قاضي په حکم موکل اړخ
ته واپس کړې شو

فَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ أَنَّهٗ لَيْسَ لِلْوَكِيْلِ نود امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه وکيل ته دا اختيار
نشته. أَنْ يَّبِيْعَهٗ مَرَّةً أُخْرٰى چې هغه دا دوباره خرڅ کړي.

**تشريح:** نود حضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز وکيل لپاره به دوباره ددې غلام خرڅولو اختيار نه وي.ځکه

چې د مؤکل پخپله ددې غلام خرڅول،

لِأَنْ يَبِيعَهُ بِنَفْسِهِ مَنَعَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ خکه چې د مؤکل پخپله خرڅول وکیل د تصرف نه منع کول دی. فَصَارَ كَالْعَزْلِ. نودا د معزول کول پشان شو.

تشریح: دلیله◉ ددې خبرې دلیل دې.چه مؤکل، وکیل د تصرف کاوه نه منع کړې دې.اودا داسې شوه.لکه چې وکیل ئې صراحةً معزول کړې وی.نو لکه څنګه چې په صراحت سره د معزول کاوه په صورت کې وکیل ته د تصرف اختیار نه وی.دغه ډول به په دې صورت کې هم وکیل ته د دوباره غلام خرڅولو اختیار نه وی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ:او امام محمد رحمه الله فرمائی. لَهُ أَنْ يَبِيعَهُ مَرَّةً أُخْرَى() چې وکیل ته د دوباره خرڅولو اختیار شته.

تشریح: حضرت امام محمد رحمه الله فرمائی.چه وکیل ته به په دې صورت کې دوباره د غلام خرڅولو اختیار حاصل وی.

لِأَنَّ الْوَكَالَةَ بَاقِيَةٌ خکه چې وکالت پاته دی. لِأَنَّهُ إِطْلَاقٌ وَالْعَجْزُ قَدْ زَالَ خکه چې وکالت اطلاق دی.او عجز زائل شو.

تشریح: دلیله◉ خکه چې وکالت ددې کارد مطلق اجازت نوم دی.د کوم کار ئې چې دې وکیل کړې دې.اود مؤکل د اړخه اجازت تر اوسه پورې پاته دې.البته د مؤکل پخپله ددې غلام خرڅولو په وجه وکیل د تصرف نه عاجز شوې وو.خو کله چې غلام مؤکل ته راواپس شو.نودا عجز زائل شو.بهرحال هرکله چې عجز زائل شو.او وکالت پاته دې.نو وکیل ته به اختیار وی.چه هغه غلام دوباره خرڅ کړی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا وَكَّلَهُ بِالْهِبَةِ په خلاف ددې که وکیل ئې ددې غلام هبه کاوه لپاره وکیل کړو. فَوَهَبَ بِنَفْسِهِ بیا مؤکل پخپله دا هبه کړو. ثُمَّ رَجَعَ بیا ئې دهبه نه رجوع اوکړله. لَمْ يَكُنْ لِلْوَكِيلِ أَنْ يَهَبَ نو وکیل ته دا اختیار نشته.چه دا دوباره هبه کړی. لِأَنَّهُ مُخْتَارٌ فِي الرُّجُوعِ خکه چې مؤکل په رجوع کولوکې اختیار مند دی. فَكَانَ ذٰلِكَ دَلِيلَ عَدَمِ الْحَاجَةِ. نودا د عدم حاجت دلیل دی. أَمَّا الرَّدُّ بِقَضَاءٍ بِغَيْرِ اخْتِيَارِهِ او پاتې شود مؤکل د اختیار نه بغیر د قاضی په حکم بیع واپس کول. فَلَمْ يَكُنْ دَلِيلُ زَوَالِ الْحَاجَةِ،نودا د حاجت د زوال دلیل نه دی. فَإِذَا عَادَ إِلَيْهِ قَدِيمُ مِلْكِهِ نو هرکله چې داغلام دې مؤکل سره دده د قدیم ملك نه واپس راغی. كَانَ لَهُ أَنْ يَبِيعَهُ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ نو وکیل لپاره دده د خرڅولو اختیار شته.والله تعالی اعلم.

تشریح: ددې په خلاف که یوکس بل څوك د څه شي دهبه کاوه وکیل کړو.او بیا مؤکل پخپله هبه کړو.بیا مؤکل د هبه نه رجوع اوکړله.نو وکیل ته به بالاجماع د دوباره هبه کاوه اختیار نه وی.خکه مؤکل چې پخپله هبه کونکې وو.هغه پخپل اختیار سره رجوع اوکړله.اود مؤکل پخپل اختیار سره رجوع کول ددې خبرې دلیل دې.چه هغه ته د هبه کاوه اړتیا نشته.خکه که هغه ته دهبه کاوه اړتیا وو.نو هغه به هیڅ کله رجوع نه کوله.نود مؤکل د هبه نه رجوع کول ددې خبرې دلیل دې.چه هغه وکالت ختم کړې دې.او هرکله چې مؤکل وکالت ختم کړو.نو وکیل ته به د هبه کاوه اختیار نه وی.

او اوس پاتې شو عیب دار مبیع د قاضی په حکم مؤکل اړخ ته واپس راتګ ،نودا د مؤکل په اختیار سره نه دی.بلکه مؤکل ته مجبوراً اخستل راپیښ شو.اوهرکله چې داسې دد.نود مبیع مؤکل اړخ ته واپس راتګ به ددې خبرې دلیل نه وی.چه مؤکل ته د غلام خرڅولو اړتیا نشته.بلکه مؤکل ته دغلام خرڅولو اړتیا پاته

() القول الراجح هوهذا قول محمد m كذا فی الدرالمختار(٤٦٥\٤) وفتح القدير(١٤٢\٧، ١٤١)نقلاً عن القول الراجح (١٦٨\



دې.نو هرکله چې عیب دار غلام مؤکل اړخ ته د هغه د قدیم ملك لاندې واپس راغی:او دده د خرڅولو اړتیا موجود دې.نو وکیل ته به اختیار وی.چه دا خرڅ کړی.والله اعلم بالصواب،

## كتاب الدعوى

ژباړه: ( دا) کتاب د دعوه ( په بیان کې ) دې.

**الربط بما قبله**◉ وړاندې کتاب الوکالة تیرشوې دې اوچونکه اکثر وکالت په خصومت کې کولای شی او خصومت د دعوی سبب وی د دې امله ئې په کتاب الوکالت پسې کتاب الدعوی راوړلو چې لکه څنګه مسبب د سبب نه روسته وی دغه ډول کتاب الدعوی هم د کتاب الوکالة نه روسته شو

**الدعوی في اللغة**◉دعوه په لغت کې د هغه قول نوم دې.په کوم سره چې انسان په بل سړی باندې د حق واجبولو اراده اوکړی.

**الدعوی في الاصطلاح**◉اودفقهاؤ په اصطلاح کې دعوه دهغه سړی ( قاضی ) په مجلس کې د.حق د مطالبې نوم دې.کوم سړې چې د حق د ثبوت په صورت کې په خلاصی ور کاوه قادر وی.د دعوه سبب هم هغه دې.کوم چې د بیع سبب دې.یعنی «تعلق البقاء المقدور بتعاطی المعاملات» خکه چې د مدعی دعوه به یا د نسل بقاء اړخ ته راجع وی.یا به د نفس بقاء اړخ ته، یا به ددې دواړو توابع اړخ ته راجع وی.اوپه درې واړه صورتونوکې ژوند پاته سائل مقصود دی.

**شروطه**◉ ① د مدعی دعوه کې به خصم حاضر وی ② مدعا به معلوم شئ وی.③ مجلس د قاضی ④ دې دعوې سره مدعی علیه باندې حکم متعلق کیږی.خکه چې د قاضی دمجلس نه په علاوه کې دعوه نه صحیح کیږی. اوکه خصم حاضر نه وی.مدعی به مجهول وی.یا دعوې سره مدعی علیه باندې هیڅ نه لازمیږی.نو په دې صورتونو کې به دعوه فاسد وی.د دعوه حکم دادې.چه خصم باندې ،،نعم،، یا ،،لا،، سره خواب واجب وی.

### د مدعی دعوی پریخودل

قَالَ (الْمُدَّعِي مَنْ لَا يُجْبَرُ عَلَى الْخُصُومَةِ إِذَا تَرَكَهَا) مدعی هغه کس دې.که هغه دعوه پریږدی.نو هغه په خصومت باندې نشی مجبوره کولې. (وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَنْ يُجْبَرُ عَلَى الْخُصُومَةِ) او مدعی علیه هغه دې.چه په خصومت باندې مجبوره کولې شی. وَمَعْرِفَةُ الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا مِنْ أَهَمِّ مَا يُبْتَنَى عَلَيْهِ مَسَائِلُ الدَّعْوَى،په کومو امورو چې د دعوه مسائل مبنی دی.هغې کې د ټولو نه زیات اهم دوی دواړو په منځ کې توپیر پیژندل دی. وَقَدِ اخْتَلَفَتْ عِبَارَاتُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ فِيهِ،په دې اړه کې د مشائخو عبارتونه مختلف دی. فَمِنْهَا مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ منجمله د هغې نه یو هغه دې.کوم چې قدوری کې بیان شوې دی. وَهُوَ حَدٌّ عَامٌّ صَحِيحٌ. دا تعریف عام دې.صحیح دې. وَقِيلَ او ونیلی شوی دی. الْمُدَّعِي مَنْ لَا يَسْتَحِقُّ إِلَّا بِحُجَّةٍ كَالْخَارِجِ، چې مدعی هغه کس دی.کوم چې د حجت نه بغیر مستحق نه وی.لکه هغه سړې کوم چې د بل په قبضه کې د کوم عین دعوه کوی. وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَنْ يَكُونُ مُسْتَحِقًّا بِقَوْلِهِ مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ كَذِي الْيَدِ،او مدعی علیه هغه سړې دې.کوم چې صرف پخپل قول دڅه حجت نه بغیر مستحق وی.لکه قابض. وَقِيلَ او ونیلی شوی دی. الْمُدَّعِي مَنْ يَتَمَسَّكُ بِغَيْرِ الظَّاهِرِ مدعی هغه دې.کوم چې خلاف ظاهر نه استدلال اوکړی. وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَنْ يَتَمَسَّكُ بِالظَّاهِرِ او مدعی علیه هغه دې.کوم چې د ظاهر نه استدلال اوکړی.

تشریح: **الفرق بين المدعی والمدعی علیه**◉ مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په کومو امورو باندې د دعوه مسائل مبنی دی.هغې کې د ټولو نه زیاته اهمه خبره د مدعی او مدعی علیه په منځ کې توپیر پیژندل دی.خکه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی. «البينة على المدعي واليمين على من انكر» یعنی ،،مدعی باندې بینه دی.او مدعی علیه باندې یمین دې،،نو ددوی دواړو پیژندل ضروری شو.هم دا وجه ده.چه د مدعی او مدعی علیه په

تعریف کې د مشائخو زبردست اختلاف دې.① لکه ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.چه مدعی هغه سړې دې.کوم چې په خصومت باندې نشي مجبوره کولې.یعنی د دعوه کولونه روسته که هغه دعوه پرېښول اوغواړي.نو هغه دې پرېږدی.په هغه هیڅ قسمه زبردستی نشته.او مدعی علیه هغه کس دې.کوم چې په خصومت باندې مجبوره کولې شی.یعنی مدعی علیه،اود دعوه کاوه نه روسته هغه باندې خواب ورکول واجب دی.د خصومت نه د ډډې کولو(او مخ اړولو) اجازت نشته. مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه دا تعریف عام هم دې. اوصحیح هم دې.عام ځکه دې.چه مدعی او مدعی علیه په سلسله کې چې څومره تعریفونه شوی دی.دا تعریف دغه ټولو ته ګډ دې.او صحیح ځکه دې.چه دا تعریف خپلو ټولو افرادو ته جامع اود دخول غیر نه مانع دې.② بعض حضرات مشائخ فرمائي.چه مدعی هغه سړې دې.کوم چې صرف حجت سره مستحق کیږي.یعنی یا خوهغه بینه پیش کړي.یا مدعی علیه اقرار اوکړي.او یا مدعی علیه د قسم خوړلو نه انکار اوکړي.لکه هغه سړې کوم چې د داسې عین دعوه اوکړي.کوم چې د پل سړي په قبضه کې وی.په دې صورت کې به مدعی ددې معین شي هغه وخت مستحق وی.کله چې حجت شرعی موجود وی.یعنی مدعی علیه (قابض) ددې دعوې اقرار اوکړي.یا مدعی بینه پیش کړي.یا د بینه په صورت کې د یمین په مطالبه باندې مدعی علیه د قسم خوړلو نه انکار اوکړي.او مدعی علیه هغه سړې دې.کوم چې صرف پخپل قول سره د حجت نه بغیر مستحق شي.لکه مثلاً دا سړې فی الحال په عین شي باندې قابض دې.که قابض دا اووئیل.چې دا شي زما ملك دې.نو صرف په دومره وئیلو سره به دده حق ثابتیږي.ترکومه پورې چې مدعی خپل استحقاق ثابت نکړي.③ بعض عالمانو حضراتو دا وئیلی دی.چه مدعی هغه سړې دې.کوم چې خلاف ظاهر نه استدلال اوکړي.یعنی د هغه قول د ظاهر خلاف وی.او مدعی علیه هغه سړې دې.دچا قول چې د ظاهر حال موافق وی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي الْأَصْلِ:او امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائي.الْمُدَّعَى عَلَيْهِ هُوَ الْمُنْكِرُ،مدعی علیه هغه کس دې.چه منکر وی.وَهٰذَا صَحِيحٌ لٰكِنَّ الشَّأْنَ فِي مَعْرِفَتِهِ،دا قول اګرچه صحیح دې.خو خبره ددې په پېژندلو کې ده.وَالتَّرْجِيحُ بِالْفِقْهِ عِنْدَ الْحُذَّاقِ مِنْ أَصْحَابِنَا رحمهم الله،اود فقه په ذریعه د ترجیح ور کاوه حق زموږ په عالمانو کې ماهرینو ته حاصل دې. لِأَنَّ الْاِعْتِبَارَ لِلْمَعَانِي دُونَ الصُّوَرِ،ځکه چې اعتبار معانیو ته وی.صورتونو ته نه وی.فَإِنَّ الْمُودَعَ إِذَا قَالَ لکه که مودع (بفتح الدال) اووئیل.رَدَدْتُ الْوَدِيعَةَ چې ما ودیعت واپس کړو.فَالْقَوْلُ لَهُ مَعَ الْيَمِينِ وَإِنْ كَانَ مُدَّعِيًا لِلرَّدِّ صُورَةً،نو مع الیمین به هم دهغه قول معتبر وی. اګرچه هغه د صورت واپس کاوه مدعی دې.لِأَنَّهُ يُنْكِرُ الضَّمَانَ،ځکه چې هغه معنی د ضمان منکر دې.

**تشریح:** حضرت امام محمد رحمه الله په مبسوط کې فرمائیلی دی.چه مدعی علیه منکر ته وائي.مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه د امام محمد رحمه الله دا قول صحیح دې.ځکه یوحدیث کې فرمائیلی شوی دی.چه«الیمین علی من انکر»اوبه یو حدیث کې دی«الیمین علی المدعی علیه»د دواړو حدیثونو په جمع کاوه سره معلومیږي. چې مدعی علیه او منکر دواړه یو دی.یعنی مدعی علیه منکر وی.

**التبصرة علی تعریف محمد رحمه الله** ⊙مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه د امام محمد رحمه الله په دې قول خبره نه صفاکیږي.ځکه چې زمونږه خبره دهغه منکر په شناخت کې ده.چه فریقینو کې مدعی څوك دې.اومنکر (مدعی علیه) څوك دې ځکه چې په بعض صورتونوکې یو سړې صورة مدعی معلومیږي.او معنی منکر معلومیږي.او کله یوسړې صورة منکر معلومیږي.او معنی مدعی علیه معلومیږي.یعنی په یوسړي کې په یو لحاظ سره دعوه او په یولحاظ سره انکار جمع کیږي.اوهرکله چې په یو سړي کې دعوه او انکار دواړه جمع کیږي.نو دا شناخت (او پیژندګلو) به ضروری وی.چه دا سړې مدعی دې.اوکه منکر او مدعی علیه دې.

**التعریف الراجح عندصاحب الهدایة** ⊙المرغینانی رحمه الله فرمائي.چه زموږ په عالمانوکې چې کومو حضراتو ته الله تعالی عقلمندی او مهارت ورکړې دې.هغه حضرات د معنی په ذریعه ترجیح ورکوی.یعنی کله چې د



دعوه او انکار طرفونه متعارض شی.نود معنی په ذریعه به ترجیح ورکولې شی.یعنی د معنی په اعتبار سره که هغه مدعی دې.نو هغه به مدعی ګڼړلې شی.اوکه د معنی په اعتبار سره منکر دې.نو هغه ته به منکر او مدعی وئیلې شی.ځکه چې په حقیقت کې د معنی اعتبار کولې شی.اود ظاهری صورت اود لفظ اعتبار نشی کولې. که مودَع (بفتح الدال) دعوه اوکړله.چه ما د ودیعت مال مودِع (بکسرالدال) ته واپس کړې دې.نو مع الیمین به هم دده قول معتبر وی.اګرچه مودَع (بفتح الدال) صورة د واپس کاوه مدعی دې.خو معنی د وجوب ضمان منکر دې.یعنی پټ دا هم وائي.چه ما باندې ضمان واجب نه دې.نو په دې سړي کې د صورت او معنی دواړه طرفونه متعارض شو.په دې وجه به د معنی اړخ ته ترجیح ورکولې شی.او وئیلې به شی.چه مودَع (بفتح الدالِ) منکر دې.اود بینه نه کیدلو په صورت کې د منکر قول مع الیمین معتبر وی.ځکه به دلته کې هم دمودَع (بفتح الدال) قول مع الیمین معتبر وی.

### دعوې به کله قبلولې شي؟

قَالَ (وَلَا تُقْبَلُ الدَّعْوَى حَتَّى يَذْكُرَ شَيْئًا مَعْلُومًا فِي جِنْسِهِ وَقَدْرِهِ) او دعوه به نشي قبلولې ترڅو چې مدعی یو داسې شي بیان کړي.چه د هغې جنس او مقدار معلوم وی.لِأَنَّ فَائِدَةَ الدَّعْوَى الْإِلْزَامُ بِوَاسِطَةِ إِقَامَةِ الْحُجَّةِ،ځکه چې د دعوې فائده د حجت د اقامت لپاره مدعی علیه باندې مدعی به لازمول دی،وَالْإِلْزَامُ فِي الْمَجْهُولِ لَا يَتَحَقَّقُ حالانکه د مجهول شي لازمول ناممکن دی. (فَإِنْ كَانَ عَيْنًا فِي يَدِ الْمُدَّعَى) عَلَيْهِ نو که د مدعی علیه په قبضه کې څه مال عین وی. كُلِّفَ إِحْضَارَهَا نو مدعی علیه ته به تکلیف ورکولې شی.لِيُشِيرَ إِلَيْهَا بِالدَّعْوَى چې هغه دغه مال عدالت کې حاضر کړي.چه په دعوه کاوه کې هغې اړخ ته اشاره اوکړې شی.وَكَذَا فِي الشَّهَادَةِ وَالْاِسْتِحْلَافِ،اوهم دغه ډول په ګواهی او قسم اخستلو کې ، لِأَنَّ الْإِعْلَامَ بِأَقْصَى مَا يُمْكِنُ شَرْطٌ ځکه چې د امکان حده پورې خبرول شرط دی. وَذٰلِكَ بِالْإِشَارَةِ فِي الْمَنْقُولِ او داسې خبرول مال منقول کې اشاره سره کیږي.لِأَنَّ النَّقْلَ مُمْكِنٌ وَالْإِشَارَةُ أَبْلَغُ فِي التَّعْرِيفِ، ځکه چې منتقل کول ممکن دی.او په تعریف او شناخت اشاره ابلغ وی.

**تشریح:** ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.چه د مدعی دعوه به هغه وخت قبلولې شی.کله چې دې ددغه شي جنس او مقدار ذکرکړي.د کوم چې دعوه کړې شوې ده.مثلاً داسې اووائي.چه زما په فلانی سړي باندې سل دینار دی.سل درهم دی.یو کُر غنم دی.ځکه د دعوې فائده داده.چه حجت قائم کړي.او مدعی علیه باندې د مدعی حق لازم کړې شی.اود مجهول شي لازمول ممکن نه دی.په دې وجه د مدعی به شي جنس او مقدار بیانول ضروری دی.

ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.که مدعی به( دکوم چې دعوه شوې ده) د مدعی علیه په قبضه کې مال عین منقول وی.نو مدعی علیه ته به تکلیف ورکولې شی.چه هغه دغه مال د قاضی په عدالت کې حاضرکړي.چه مدعی د دعوه کاوه په وخت دغه مال اړخ ته اشاره اوکړې شی.دغه ډول که ګواهانو ګواهی ورکړله.یاد مدعی علیه نه قسم واخستلې شو.نو مدعی علیه ته به زحمت او تکلیف ورکولې شی.چه هغه مدعی به مال حاضرکړي.چه ګواهان د شهادت ادا کاوه په وخت هغې اړخ ته اشاره اوکړي.دغه ډول که ګواهانو ګواهی ورکړله.یاد مدعی علیه نه قسم واخستلې شو.نو مدعی ته به تکلیف ورکولې شی.چه هغه مدعی به مال حاضرکړي.چه ګواهان د شهادت ادا کاوه په وخت هغې اړخ ته اشاره اوکړي.او مدعي علیه د قسم په وخت اشاره اوکړي.

دلیل دادې.چه د مدعی به په اړه کې څومره چې ممکن وی.خبرول شرط دی.او داسې خبریدل په مال منقول کې اشاره سره کیږي.ځکه چې مال منقول په عدالت کې منتقل کول هم ممکن دی.اوبه اشاره سره زیاته پیژندګلو کیږي.ځکه اشاره کول داسې دی.لکه چې په یوڅیز باندې لاس ایخودلې وی.اود لاس ایخودلو نه روسته په شناخت او پیژندلو کې څه شبه کیدلې شی ؟ بهرحال اشاره کاوه لپاره ددې مدعی به

شئ د قاضي په مجلس کي حاضرول ضروري دي.

وَيَتَعَلَّقُ بِالدَّعْوَىٰ وُجُوبُ الْحُضُورِ او دعوه صحيح سره (بعض امور) متعلق کيږي. د مدعى حاضرکيدل، وَعَلَىٰ هَٰذَا الْقُضَاةُ مِنْ آخِرِهِمْ فِي كُلِّ عَصْرٍ او ل نه تر آخره پوري د هري زماني قاضي دي قول باندي راروان دی. وَوُجُوبُ الْجَوَابِ إِذَا حَضَرَ لِيُفِيدَ حُضُورُهُ اود خواب واجبيدل کله چي مدعى عليه حاضر وي.چه دده حاضريدل گټور وي. وَلُزُومُ إِحْضَارِ الْعَيْنِ الْمُدَّعَاةِ او مال منقول په کوم کي چي دعوه واقع شوي ده.د هغي حاضرول لازم دي. لِمَا قُلْنَا دليل هم هغه دي.کوم چي موږ بيان کړي دي. وَالْيَمِينُ إِذَا أَنْكَرَهُ او کله چي مدعى عليه د دعوه انکار اوکړي.نو يمين لازم دي. وَسَنَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَىٰ دا به انشاءالله نږدي ذکر کړو.

**تشريح:** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دعوه صحيحه سره بعض امور متعلق کيږي. ① مدعى عليه باندي د قاضي په مجلس کي حاضريدل ضروري دی.د هر زماني قاضيانو عمل هم په دي دي.لکه چي حضرت عمر،عثمان، علي رضي الله عنه او د صحابو رضي الله عنهم نه روسته تابعينو رحمهم الله هم په دي باندي عمل کړي دي.او هيڅ چا نکير نه دي کړي.او ابن ابى ليلى به هم دا عمل کولو.خو ابوحنيفه رحمه الله نکير نه دي کړي.نودا د اجماع قائم مقام ده.او په دي سلسله کي اصل د الله تعالى دا قول دي. ﴿وَإِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِنْهُمْ مُعْرِضُونَ﴾ يعني کله چي دوی الله او دده رسول ارخ ته راوغوښتلي شي.چه هغوی د دوی په منځ کي فيصله اوکړي. نو په دوی کي يوه ډله اعراض کوی. ② کله چي مدعى عليه حاضر وي.نو په ده باندي، ،نعم، ، يا، ،لا، ، سره خواب ورکول واجب دی.چه دده حاضري گټور ثابت شي.ځکه چي د مدعى د حاضريدلو مقصد خواب ورکول دی. ③ مال منقول په کوم کي چي دعوه واقع شوي ده.د تير شوی دليل په وجه د قاضي په مجلس کي د هغي حاضرول ضروري دی. ④ اوکه مدعى عليه د دعوي انکار اوکړي.او مدعى د بينه پيش کاوه نه عاجز شي.نو مدعى عليه باندي يمين لازم دي.د يمين د لزوم بيان به انشاءالله ددي باب په آخرکي راشي.

قَالَ (وَإِنْ لَمْ تَكُنْ حَاضِرَةً) اوکه دغه مال منقول حاضر نه وي. ذَكَرَ قِيمَتَهَا نود هغي قيمت به ذکر کوی. لِيَصِيرَ الْمُدَّعَىٰ مَعْلُومًا) چي مدعى (دځه چي دعوه کړي شوي ده) معلومه شی. لِأَنَّ الْعَيْنَ لَا تُعْرَفُ بِالْوَصْفِ،ځکه چي مال منقول د وصف په ذريعه نشي معلوميدلي. وَالْقِيمَةُ تُعْرَفُ بِهِ اود قيمت په ذريعه پيژندگلو کيدلي شی. وَقَدْ تَعَذَّرَ مُشَاهَدَةُ الْعَيْنِ. حالانکه دمال عين مشاهده کول متعذر دی. وَقَالَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ: فقيه ابوالليث رحمه الله فرمائي. يُشْتَرَطُ مَعَ بَيَانِ الْقِيمَةِ ذِكْرُ الذُّكُورَةِ وَالْأُنُوثَةِ چي قيمت بيانولو سره د مذکر او مؤنث کيدلو ذکر کول هم شرط دی.

**تشريح:** ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي.که مال منقول د کوم چي دعوه کړي شوي ده.د مدعى عليه په قبضه کي موجود نه وي.بلکه ضائع شو.يا (مدعى عليه) غائب شو.چه د هغه د اوسيدلو خاني معلوم نه دي.نو په دي صورت کي به مدعى ددغه مال قيمت ذکرکوی.چه مدعى معلومه شی.او دعوه صحيح شی.په دي صورت کي به د وصف بيانول کافی نه وي.ځکه چي کله کله وصف په ډيرو اعيانو کي مشترك وي.نود اشتراك په وجه د وصف په ذريعه د عين شئ شناخت (او پيژندگلو) نه کيږي.او هرکله چي داسي ده.نو ددي اشتراك په وجه به د وصف بيانول گټور نه وي.او پاتي شو قيمت،نو ددي په ذريعه د شئ شناخت کيدلي شي.نو هرکله چي د قيمت په ذريعه د شئ شناخت کيدلي شي.اود عين شئ مشاهده کول متعذر دی.نو قيمت ذکر کول به گټور وی.ځکه چي په داسي صورت کي قيمت ذکرکول د خبريدلو آخرى ممکن درجه ده.فقيه ابوالليث رحمه الله فرمائي.چه په ذکر شوی صورت کي د قيمت بيانولو سره ددي بيانول هم ضروري دی.چه دکوم دعوه شوي ده.چه مذکر دي.اوکه مؤنث دي.

**دغير منقول څيز دعوى لپاره حدود اربعه بيانول**



قَالَ (وَإِنْ ادَّعَىٰ عَقَارًا) که مدعى د يوغير منقول شئ دعوه اوکړله. حَدَّدَهُ وَذَكَرَ أَنَّهُ فِي يَدِ الْمُدَّعَىٰ عَلَيْهِ نو مدعى به د هغي حدود اربعه هم بيانوی.چه هغه د مدعى عليه په قبضه کي دي. وَأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ) اودا چي مدعى هغه نه ددي مطالبه کړي ده. لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ التَّعْرِيفُ بِالْإِشَارَةِ لِتَعَذُّرِ النَّقْلِ ځکه چي د قاضي په مجلس کي د منتقل کاوه د متعذرکيدلو په وجه اشاره سره د هغي شناخت کول متعذر دی. فَيُصَارُ إِلَى التَّحْدِيدِ نو تحديد ارخ ته به رجوع کولي شی. فَإِنَّ الْعَقَارَ يُعْرَفُ بِهِ،ځکه چي غيرمنقول شئ په دي طريقه وی. وَيَذْكُرُ الْحُدُودَ الْأَرْبَعَةَ،او څلور واړه حدود به ذکر کوی. وَيَذْكُرُ أَسْمَاءَ أَصْحَابِ الْحُدُودِ وَأَنْسَابَهُمْ، اود حدود والا خلگو نوم او نسب به ذکرکوی.

**تشريح:** مسئله داده.که مدعى د غيرمنقول شئ مثلاً د زمکي يا د کور دعوه اوکړله.نو ددي دعوه صحيح کيدلو لپاره دري شيان ضروري دی. ① مدعى ددغه مدعى به شئ حدود بيان کړي.يعنی دا بيان کړي.چه دمدعى به د مشرقی ارخ مالك فلاني دي.د مغربی ارخ فلاني،د شمالی ارخ فلاني، او د جنوب د ارخ فلاني مالك دي. ② مدعى دا هم بيان کړي.چه مدعى به شئ د مدعى عليه په قبضه کي دي. ③ اودا هم بيان کړي.چه ما د مدعى عليه ددي مدعى به شئ مطالبه هم کړي ده.

د رومبی دليل دادي.چه غيرمنقول شئ عدالت کي منتقل کول متعذر دی.په دي وجه اشاره سره ددي شناخت کول به هم ممکن نه وي.اوهرکله چي مدعى عليه لپاره د مدعى به اشاره سره شناخت کول ممکن پاتي نشو.نو ددي حدونه بيانول به ضروري وي.ځکه چي د غير منقول شئ پيژندل په دي طريقه کيږي.نو مدعى عليه دي د ټولو نه وړاندي هغه ښار بيان کړي.په کوم ښار کي چي مدعى به واقع دي.بيا دي په ښار کي هغه خاني ذکرکړي.کوم خاني چي هغه واقع دي.ددي نه روسته دي دمدعى به حدود اربعه ذکر کړي.د حدود اربعه ذکر کاوه په وخت د حدونو د مالکانو نوم او نسب بيانول هم ضروري دی.مثلاً داسي دي اووائی.چه د مدعى به د مشرقی ارخ مالك خالد بن حامد بن ماجد دي.

وَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِ الْجَدِّ اود نيکه ذکر ضروري دي. لِأَنَّ تَمَامَ التَّعْرِيفِ بِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ عَلَىٰ مَا عُرِفَ ځکه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د نيکه په ذکر سره تعريف پوره کيږي.لکه چي معلوم شوي ده. هُوَ الصَّحِيحُ، اوهم دا روايت صحيح دي. وَلَوْ كَانَ الرَّجُلُ مَشْهُورًا يُكْتَفَىٰ بِذِكْرِهِ اوکه سړي مشهور وی.نو دهغه په نوم ذکر کاوه به اکتفاء کولي شي.

**تشريح:** مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د حدود د مالکانو نوم او نسب کي د نيکه نوم ذکر کول هم ضروري دی.ځکه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د نيکه په ذکر سره تعريف پوره کيږي.لکه چي په بله موقع معلوم شوی دی.اوهم دا قول صحيح دي.

مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د حدود په مالکانو کي که يوسړي ډير مشهور وي.مثلاً ابن ابى ليلى ، امام محمد رحمهما الله وغيره.نو ددوی په نوم ذکر کاوه به اکتفاء کولي شی.يعنی د نسب ذکر کاوه نه بغير صرف ددوی په نوم به اکتفاء کافی وی.

فَإِنْ ذَكَرَ ثَلَاثَةً مِنَ الْحُدُودِ نو که مدعى دري حدونه ذکر کړل. يُكْتَفَىٰ بِهَا عِنْدَنَا[1] نو زموږ په نيز به په دي اکتفاء کولي شی. خِلَافًا لِزُفَرَ رحمه الله لِوُجُودِ الْأَكْثَرِ د امام زفر رحمه الله اختلاف دي.ځکه چي اکثر حدود اوموندلی شو. بِخِلَافِ مَا إِذَا غَلِطَ فِي الرَّابِعَةِ په خلاف ددي چي په څلورم حد بيانولوکي ئې غلطي اوکړله. لِأَنَّهُ يَخْتَلِفُ بِهِ الْمُدَّعَىٰ ځکه چي دي سره دعوه مختلف کيږي. وَلَا كَذَٰلِكَ بِتَرْكِهَا، او ددي په پريښولو کي داخبره نشته.

[1]) القول الراجح هوقول الجمهور رحمهم الله كذا فى نتائج الأفكار(١٥٢\٧) والخانية (٦٤\٣) والدر المختار (٤٤\١ ٤٦٩) وشرح المجلة (٣١\٥ ماده (١٦٢٣) نقلاً عن القول الراجح(١٦٩\٢)

تشريح: اوکه مدعی په څلور حدونو کې صرف درې حدونه بيان کړل.او څلورم حد ئې ذکر نکړو.① نو زموږ په نيز به اکتفاء کولې شی.

دليلنا: زموږ دليل دادې،چه په دې صورت کې اکثر حدونه ذکر کړې شوی دی.او اکثر د کُل په مرتبه کې وی.نو په اکثر به د کُل حکم لګولې شی.ددې ځائې نه دا خبره هم معلومه شوه.چه صرف د دوې (دوه) حدونو ذکر کول به کافی نه وی.البته که مدعی درې حدونه صحيح بيان کړل.او څلورم حد ئې غلط بيان کړو.نودا دعوه به غلط وی.ځکه چې د مدعی به حد بيانولو کې د غلطئ په وجه مدعی به مختلف شو.نو دعوه به صحيح نه وی.اود څلورم حد بيان پرېښولو کې دا خبره نشته.ځکه چې هغه حد پخپله موقع دې.اګرچه بيان ئې نکړو.لکه مثلاً که دوې (دوه) ګواهانو په بيع او ثمن باندې د قبضې ګواهی ورکړله.اود ثمن ذکر ئې پرېښولو .نو ددوی ګواهی به جائز وی.او که دوی په ثمن بيانولو کې غلطی اوکړله.نو ددوی ګواهی به جائز نه وی.د پرېښولو او غلطئ په منځ کې ددې توپير نه روسته د امام زفر رحمه الله ، پرېښول په غلطئ باندې قياس کول به هم صحيح نه وی.

② اود امام زفر رحمه الله په نيز درې حدونه بيانول کافی نه دی.

دليله: د امام زفر رحمه الله دليل دادې،چه دوی د پرېښولو صورت په غلطئ باندې قياس کړې دې.يعنی لکه څنګه چې د حد بيانولو کې غلطی کاوه سره دعوه باطليږی.دغه ډول د پرېښولو په صورت کې هم دعوه باطليږی.

وَكَمَا يُشْتَرَطُ التَّحْدِيدُ فِي الدَّعْوَى اولکه څنګه چې په دعوه کې حدونه بيانول شرط دی.يُشْتَرَطُ فِي الشَّهَادَةِ. دغه ډول په ګواهئ کې هم حدونه بيانول شرط دی. وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ وَذَكَرَ أَنَّهُ فِي يَدِ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ لَا بُدَّ مِنْهُ او په قدوری کې د مصنف رحمه الله قول ﴿وذکر انه فی يدالمدعی عليه﴾ ددې بيانول ضروری دی. لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَنْتَصِبُ خَصْمًا ځکه چې مدعی عليه به هغه وخت خصم ګرځولې شی. إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ، کله چې مدعی شئ د هغه په قبضه کې وی.

تشريح: مرغينانی رحمه الله فرمائی،چه لکه څنګه په دعوه کې حدونه بيانول شرط دی.دغه ډول په ګواهئ کې هم حدونه بيانول شرط دی.يعنی کوم خلګ چې په دې دعوه باندې ګواهان وی.هغوی به حدونه بيانوی.د دوهم شئ دليل دادې،چه مدعی عليه به هغه وخت خصم ګرځولې شی.کله چې مدعی به شئ دهغه په قبضه کې وی.

وَفِي الْعَقَارِ لَا يُكْتَفَى اوپه عقار (غيرمنقول شئ لکه مځکه او کور) کې اکتفاء نشی کولې. بِذِكْرِ الْمُدَّعِي د مدعی په ذکرکولو، وَتَصْدِيقِ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ او د مدعی عليه په تصديق کولو، أَنَّهُ فِي يَدِهِ چې دا عقار (غيرمنقول څيز) ددې مدعی عليه په قبضه کې دې. بَلْ لَا تَثْبُتُ الْيَدُ فِيهِ إِلَّا بِالْبَيِّنَةِ بلکه په عقار کې به قبضه نه ثابتيږی.خو په ګواهانو سره، أَوْ عِلْمِ الْقَاضِي يا قاضی ته معلومه وی. هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده. نَفْيًا لِتُهْمَةِ الْمُوَاضَعَةِ چې خپل منځ کې د روغې جوړې (اود کنبت صلاح) د تهمت نه بچ شی. إِذِ الْعَقَارُ عَسَاهُ فِي يَدِ غَيْرِهِمَا، ځکه ډېره ممکن ده.چه عقار ددوی دواړو نه علاوه په قبضه کې وی. بِخِلَافِ الْمَنْقُولِ په خلاف د مال منقول لِأَنَّ الْيَدَ فِيهِ مُشَاهَدَةٌ ځکه چې دې کې قبضه شاهد وی.

تشريح: مرغينانی رحمه الله فرمائی،چه په عقار (غيرمنقول څيز) کې د مدعی په بيانولو،او د مدعی عليه په تصديق کولو (چې دا عقار يعنی غيرمنقوله څيز، زما په قبضه کې دې) به اکتفاء نشی کولې.يعنی که د امر اقرار اوکړو،چه په کوم عقار باندې ئې دعوه کړې ده.هغه زما په قبضه کې دې.نودا به کافی نه وی.بلکه بينه سره به د مدعی عليه قبضه ثابتول ضروری وی.يعنی ګواهان به په دې خبره باندې ګواهی ورکوی.چه



موږ مذکوره عقار ددې مدعی عليه په قبضه کې ليدلې دې.تردې که ګواهانو اووئيل چه موږ اوريدلی دی،چه مذکوره عقار د مدعی عليه په قبضه کې دې.نودا ګواهی به قبول نه وی.يا قاضی ته ذاتی طور باندې معلوم وی،چه مذکوره عقار د مدعی عليه په قبضه کې دې.

دليله: دمدعی په دې بيانولو کې چې مذکوره عقار د مدعی عليه په قبضه کې دې.اود مدعی عليه په اقرار کاوه کې د تهمت امکان دې،په دې طريقه چې مذکوره عقار ددوی دواړو نه علاوه د دريم کس په قبضه کې وی.او دوی دواړو ددې زمکې هړپ (او ناجائز قبضه) کاوه لپاره په دې باندې اتفاق کړې وی،چه مدعی به دا بيانوی،چه عقار د مدعی عليه په قبضه کې دې.او مدعی عليه به ددې تصديق کوی.او بيا به قاضی د مدعی لپاره د قبضې فيصله کوی.بيا به ئې دواړه ويش کړی.او اوبه ئې خوری.نود تهمت ددې امکان لرې کاوه لپاره اووئيلې شو،چه صرف د مدعی بيانول، اود مدعی عليه دده تصديق کول به کافی نه وی.بلکه د مدعی عليه قبضه د ګواهانو په ذريعه ثابتول به ضروری وی.ددې په خلاف که مدعی به مال منقول وی.نو په دې باندې د مدعی عليه قبضه ثابتولو لپاره بينه پيش کول ضروری نه دی.ځکه چې مال منقول کې قبضه شاهد وی.او قبضه د ملکيت دليل دې.نو په دې صورت کې د بينه نه بغير د مدعی عليه قبضه ثابتيږی.او دعوه صحيح کيږی.

وَقَوْلُهُ وَأَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ اود مصنف رحمه الله قول ﴿وانه مطالبه﴾ ځکه دې. لِأَنَّ الْمُطَالَبَةَ حَقُّهُ چې مطالبه دده حق دې. فَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهِ، نو ددې طلب کول به ضروری وی. وَلِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ مَرْهُونًا فِي يَدِهِ ځکه دا احتمال شته،چه عقار مذکور ددې مدعی عليه په قبضه کې د رهن په طور وی. أَوْ مَحْبُوسًا بِالثَّمَنِ فِي يَدِهِ، يا دده په قبضه کې د ثمن په وجه محبوس وی. وَبِالْمُطَالَبَةِ يَزُولُ هَذَا الِاحْتِمَالُ، او مطالبې سره دا احتمال زائل کيږی. وَعَنْ هَذَا قَالُوا فِي الْمَنْقُولِ يَجِبُ أَنْ يَقُولَ فِي يَدِهِ بِغَيْرِ حَقٍّ او هم دلته مشائخ فرمائی،چه منقول کې دا واجب دی،چه اووائی،چه د مدعی عليه په قبضه کې دا شئ په ناحقه دې.

تشريح: د دريم شئ دليل دادې. چې مدعی به د مدعی حق دې.نود مدعی عليه نه ددې مطالبه به هم د مدعی حق وی.او هرکله چې مطالبه د مدعی حق دې،نو مدعی لپاره مطالبه کول، يعنی مدعی به طلب کول به هم ضروری وی.

د دوهم شئ دليل دادې،چه دلته دا احتمال موجود دې،چه مدعی د مدعی عليه نه قرضه اخستې وی. او دا عقار ئې دده سره د رهن په طور ايخودې وی.يا مدعی هغه نه دا عقار اخستې وی.خود ثمن نه ادا کاوه په وجه مدعی عليه دا خان سره ساتلې وی.(اوهغه نه ئې منع کړې وی).نودا قبضه به د دعوه صحيح کيدلو دليل نه وی.خو کله چې مدعی ددې عقار مطالبه اوکړله.اود مدعی عليه د قبضې نه ئې ددې د اوښکلو اراده اوکړله. نودا احتمال به زائل وی.ځکه چې کوم شئ مرهون وی.يا په ثمن کې محبوس (اومنع) وی.نو هغه د قابض د قبضې نه نشی اوښکلې کيدلې.او د هغې داسې قسمه مطالبه نشی کولې.نو کله چې مدعی مطالبه اوکړله.نو ددې عقار د مرهون يا محبوس کيدلو احتمال پاتې نشو. بهرحال ددې احتمال رد کاوه لپاره مطالبه کول ضروری ده.ددې ځائې نه مشائخو دا خبره اوښکلې ده.که دعوه په منقول شئ کې وی.نود مدعی دا وئيل به ضروری وی.چه دا شئ د مدعی عليه په قبضه کې په ناحقه دې.ځکه چې د ناحق وئيلو نه روسته ددې شئ د مرهون يا محبوس بالثمن کيدلو احتمال نه پاتې کيږی.ځکه چې په مرهون شئ باندې د مرتهن قبضه، او په محبوس شئ باندې د بائع قبضه په ځائې او په حق ده.

قَالَ (وَإِنْ كَانَ حَقًّا فِي الذِّمَّةِ) اوکه مدعی په ذمه کې کوم حق وی. (ذَكَرَ أَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ) لِمَا قُلْنَا نو مدعی ذکرکړی،چه دې د مدعی عليه ددې حق مطالبه کوی.د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړو. وَهَذَا لِأَنَّ صَاحِبَ الذِّمَّةِ قَدْ حَضَرَ اودا ددې لپاره چې صاحب ذمه خو حاضر شوې دې. فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا الْمُطَالَبَةُ لَكِنْ لَا بُدَّ مِنْ تَعْرِيفِهِ بِالْوَصْفِ نود مطالبې نه بغير هيڅ پاته پاتې نه دی.خود وصف بيان سره ددغه حق شناخت کول ضروری

دی. لِأَنَّهُ يُعْرَفُ بِهِ ځکه چې دغه حق په وصف بيانولو سره معلوميږي.

تشريح: ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائي چه د کوم شئ دعوه کړې شوې ده.که دا شئ په ذمه کې څه حق يعنی دين وی.نو مدعی لپاره دا بيانول ضروری دی.چه دې د مدعی عليه نه ددې حق مطالبه اوکړی.دليل وړاندې تير شوې دې.چه مطالبه د مدعی حق دې.نو دده دا مطالبه کول ضروری ده.اودا ځکه چې دچا په ذمه کې حق دې.يعنی مدعی عليه، او هغه عدالت ته حاضر شو.نو اوس د مطالبې نه سوا هيڅ نه دی پاتې.خو چونکه دين مال معين نه دې.په دې وجه هغې اړخ ته اشاره کول ناممکن دی.البته وصف بيانولو سره د هغې شناخت کول ضروری دی.ځکه چې کوم حق په ذمه کې واجب وی.يعنی غيرمعين وی.د هغې شناخت او پيژندګلو هم په دې وصف بيانولو سره کيږی.مثلاً داسې اووائی.چه پنځه سوه کره درهم د فلانی وزن، د فلانی د خوی په ذمه دی.

### د دعوې صحيح کيدو نه روسته د قاضی د مدعی عليه نه معلومات کول

قَالَ (وَإِذَا صَحَّتِ الدَّعْوَى) وکله چې دعوه صحيح شوه. (سَأَلَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ عَنْهَا) نو قاضی به مدعی عليه نه ددې دعوه په اړه کې معلومات کوی. لِيَنْكَشِفَ لَهُ وَجْهُ الْحُكْمِ چې د حکم سبب ښکاره شی. (فَإِنِ اعْتَرَفَ) نو که مدعی عليه اقرار اوکړو. (قَضَى عَلَيْهِ بِهَا) نو قاضی به مدعی عليه باندې ددې دعوه حکم کوی. لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مُوجِبٌ بِنَفْسِهِ ځکه چې اقرار پخپله موجب دې. فَيَأْمُرُهُ بِالْخُرُوجِ عَنْهُ نو قاضی به هغه ته حکم کوی.چه هغه ددې اقرار د ذمه دارئ نه اوځی.

تشريح: صورت د مسئلې دادې.چه هرکله دعوه خپلو شرطونو سره صحيح شوه.نو قاضی به مدعی عليه نه ددې دعوه په اړه کې پوښتنه کوی.چه ته ددې دعوه اقرار کوې.او که انکار کوې.چه قاضی مدعی عليه باندې ددې دعوه حکم اوکړی.ځکه چې اقرار پخپله موجب او حجت وی.اود قاضی په قضاء باندې موقوف نه وی.او وجه ددې داده.چه انسان ته پخپل ذات باندې مکمل ولايت حاصل دې.په دې وجه صرف په اقرار کاوه سره د مدعی حق په ده باندې ثابتيږی.البته قاضی به مدعی عليه ته ددې خبرې حکم کوی.چه هغه دا حق اداکړی.او بری الذمه شی.

(وَإِنْ أَنْكَرَ) اوکه مدعی عليه د دعوه نه انکار اوکړو. (سَأَلَ الْمُدَّعِيَ الْبَيِّنَةَ) نو قاضی به مدعی نه ګواهان طلب کوی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "ځکه چې نبی کريم ﷺ مدعی ته اوفرمائيل. أَلَكَ بَيِّنَةٌ؟ آيا تا سره بينه شته؟ فَقَالَ لَا، هغه اوونيل، نا. فَقَالَ: بيا نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. لَكَ يَمِينُهُ"(۱) اوس ستا لپاره ددې مدعی عليه قسم دې. سَأَلَ نبی کريم ﷺ د مدعی نه ګواهان طلب کړل. وَرَتَّبَ الْيَمِينَ عَلَى فَقْدِ الْبَيِّنَةِ اود بينه په مفقود کيدلو نې قسم مرتب کړو. فَلَا بُدَّ مِنَ السُّؤَالِ لِيُمْكِنَهُ الِاسْتِحْلَافُ نود قاضی سوال کول ضروری دی.چه قاضی لپاره مدعی عليه نه اخستل ممکن شی

تشريح: اوکه مدعی عليه ددې دعوه انکار اوکړو.نو ددې دعوه ثابتولو لپاره به قاضی د مدعی نه ګواهان طلبوی. ځکه چې د په بخاری او مسلم کې د وائل بن حجر حديث دې.چه حضر موت نه يو سړې راغې.او يو سړې کنده نه راغی.حضرمی اوونيل.ائ د الله رسوله (ﷺ)! دې کندمی زما په مځکه باندې ظلماً قبضه کړې ده.کندمی اوونيل.ائ د الله رسوله(ﷺ)! دا زما مځکه ده.زما په قبضه کې ده.زه په دې کې زميداری کوم.دده په دې کې هيڅ حق نشته.د الله رسول ﷺ حضرمی يعنی مدعی ته اوونيل.تا سره په دې دعوه باندې بينه موجود دی.حضرمی اوونيل.د الله رسوله(ﷺ) بينه خو موجود نه دی.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.اوس ستا

---

۱) من حديث وائل بن حجر رضي الله عنه أخرجه مسلم فی الإيمان رقم ۲۲ وأبوداود فی الأيمان باب ۱۱ رقم ۳۲۴۵ والترمذی فی الأحكام باب ۱۲ رقم ۱۳۴۰)_



لپاره ددې مدعی عليه قسم دې.يعنی ستا د حق په وجه به ددې مدعی عليه نه قسم اخستلې شی.حضرمی اوونيل.ائ د الله رسوله(ﷺ) دا کندمی فاجر،فاسق سړې دې.په دروغ قسم خوړلو کې به دې هيڅ پرواه نه کوی.د الله رسول ﷺ اوفرمائيل.ستا لپاره ددې نه سوا هيڅ حق نشته.نو کله چې دا کندمی يعنی مدعی عليه د قسم خوړلو لپاره لاړلو.نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.که دې سړی په ناحق طور باندې د مال خوړلو لپاره دروغ قسم اوخوړلو.نو په قيامت کې به الله تعالی سره داسې حالت کې ملاويږی.چه الله تعالی به دده ناراضه وی.ددې حديث نه معلومه شوه.چه رسول الله ﷺ د مدعی نه اول بينه طلب کړل.اوبيا د بينه نه کيدلو په صورت کې نې په دې باندې قسم مرتب کړو.حاصل داچه قسم په په بينه نه کيدلو باندې مرتب دې.او هرکله چې قسم په بينه نه کيدلو باندې مرتب دې.نوقاضی به ړومبې د مدعی نه د بينه سوال کوی.چه قاضی لپاره مدعی عليه نه قسم اخستل ممکن شی.

قَالَ (فَإِنْ أَحْضَرَهَا) نو که مدعی بينه پيش کړل. (قُضِيَ بِهَا) نو قاضی به د بينه مطابق حکم کوی. لِانْتِفَاءِ التُّهْمَةِ عَنْهَا ځکه چې دې دعوه سره تهمت لرې شو. (وَإِنْ عَجَزَ عَنْ ذَلِكَ) و که هغه ددې نه عاجزه شو. (وَطَلَبَ يَمِينَ خَصْمِهِ) و هغه د مدعی عليه نه قسم طلب کړو. (اسْتَحْلَفَهُ عَلَيْهَا) لِمَا رَوَيْنَا نو قاضی به په دې دعوه باندې مدعی عليه نه قسم اخلی.د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړو. وَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهِ اود مدعی قسم طلب کاوه ضروری دی. لِأَنَّ الْيَمِينَ حَقُّهُ ځکه چې قسم د هغه حق دې. أَلَا يُرَى آيا ته نه ګورې. أَنَّهُ كَيْفَ أُضِيفَ إِلَيْهِ بِحَرْفِ اللَّامِ چې قسم مدعی اړخ ته حرف لام سره څنګه مضاف شوې دې. فَلَا بُدَّ مِنْ طَلَبِهِ نود هغه طلب کول ضروری دی.

تشريح: ابو الحسين قدوری رحمه الله فرمائي.که مدعی پخپله دعوه باندې بينه پيش کړل.نو قاضی به ددې بينه مطابق فيصله ورکوی.ځکه په کومه دعوه کې چې د صدق او کذب دواړو احتمال وو.د بينه په وجه د صدق اړخ راجح شو.او دعوه سره د کذب تهمت لرې شو.او هرکله چې بينه سره د دعوه صادق کيدل راجح شو.نو قاضی به د بينه مطابق مدعی لپاره فيصله کوی.که مدعی د بينه پيش کاوه نه عاجزه شو.او هغه د مدعی عليه نه د قسم مطالبه اوکړله.نو قاضی به په دې دعوه باندې مدعی عليه نه قسم اخلی.دليل هغه حديث دې.کوم چې پورته تير شو.

**وجوب مطالبة المدعی اليمين من المدعی عليه**◉ مرغينانی رحمه الله فرمائي.چه مدعی عليه نه د قسم اخستلو لپاره د مدعی مطالبه کول ضروری ده.ځکه چې مدعی عليه باندې قسم د مدعی يو حق دې.او دليل ددې دادې.چه حديث کې يمين په حرف لام سره مدعی اړخ ته منسوب دې.لکه فرمائي.چه «لك يمينه» يعنی ستا لپاره د مدعی عليه قسم دې.ددې نه معلومه شوه.چه د مدعی عليه قسم د مدعی حق دې.او صاحب حق ته دده حق هغه وخت ورکولې شی.کله چې هغه مطالبه کوی.نو دغه ډول کله چې مدعی خپل حق يعنی يمين طلب کړی.نو قاضی به مدعی عليه نه قسم اخلی.

## باب اليمين

ژباړه: (دا) باب د قسم(په بيان کې) دې.

تشريح: **الربط بما قبله**◉ دا خبره معلومه شوه چې کله مدعی د بينه پيش کاوه نه عاجز شی.اومدعی عليه د دعوه نه انکار اوکړی.اود قسم مطالبه اوکړی.نو په مدعی عليه به قسم واجب وی.نو علامه مرغينانی رحمه الله د کتاب رحمه الله په دې باب کې هغه احکام ذکرکړې دی.کوم احکام چې يمين سره متعلق کيږی.

.د ګواهانو موجود کيدلو باوجود د قسم د طلب کولوحکم

### د ګواهانو موجود کيدو باوجود د قسم طلب کولو حکم

(وَإِذَا قَالَ الْمُدَّعِي) وکله چې مدعی اوونيل. (لِي بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ) چې زما سره بينه موجود دی. (وَطَلَبَ الْيَمِينَ) او هغه

مدعی علیه نه قسم طلب کړو. (لَمْ یُسْتَحْلَفْ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، (١) نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مدعی علیه څخه به قسم نشی اخستلې. مَعْنَاهُ دې مطلب دادې. حَاضِرَةٌ فِي الْمِصْرِ چې ګواهان ښار کې موجود دی.

**تشریح: صورة المسئلة**⊛صورت د مسئلې دادې، که مدعی اوونیل، چه زما ګواهان حاضر دی. او ده د مدعی علیه نه د قسم مطالبه اوکړله.

① نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به مدعی علیه نه قسم نشی اخستلې. مرغینانی رحمه الله فرمائی، چه د ,,حاضرة،، نه مراد دادې، چه زما ګواهان په دې ښار کې حاضر او موجود دې. دا مراد نه دې، چه زما ګواهان عدالت کې حاضر دی. ځکه چې عدالت کې حاضریدلو په صورت کې بالاتفاق مدعی علیه نه قسم نشی اخستلې. بلکه که مدعی اوونیل، چه زما ګواهان په دې ښار کې حاضر دی، نو په دې کې اختلاف دې. امام صاحب رحمه الله فرمائی، چه قسم به نشی اخستلې.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. يُسْتَحْلَفُ چې مدعی علیه څخه به قسم اخستلې شی. لِأَنَّ الْيَمِينَ حَقُّهُ بِالْحَدِيثِ الْمَعْرُوفِ، ځکه چې یمین د مدعی حق دې. (اودا) د معروف حدیث نه ثابت دی. فَإِذَا طَالَبَهُ بِهِ نو کله چې مدعی د مدعی علیه نه د قسم مطالبه کوی. يُجِيبُهُ. نو مدعی علیه به دا قبلوی.

② **تشریح:** په پورتنۍ مسئله کې امام ابویوسف رحمه الله فرمائی، چه قسم به اخستلې شی.

**دلیله**⊛ دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې، چه د حدیث مشهور «البینة علی المدعی والیمین علی من انکر» یا وړاندې مذکور «لك یمینه» په وجه دا خبره ثابته ده، چه قسم د مدعی حق دې. نو هرکله چې مدعی دمدعی علیه نه دخپل حق یعنی د قسم مطالبه کوی، نو قاضی به دا قبلوی. یعنی مدعی علیه ته به د قسم حکم ورکوی. یا داچه مدعی علیه به د مدعی دا مطالبه قبلوی. یعنی قسم به خوری.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. أَنَّ ثُبُوتَ الْحَقِّ فِي الْيَمِينِ مُرَتَّبٌ عَلَى الْعَجْزِ عَنْ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ لِمَا رَوَيْنَا چې یمین کې د حق ثبوت د بینه قائمیدلو نه عاجزکیدلو باندې مرتب دی. د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړې دې. فَلَا يَكُونُ حَقُّهُ دُونَهُ، نو د بینه قائمولو نه د عاجزکیدلو نه بغیر به قسم د مدعی حق نه وی. كَمَا إِذَا كَانَتِ الْبَيِّنَةُ حَاضِرَةً فِي الْمَجْلِسِ. لکه کله چې بینه د قاضی په مجلس کې موجود وی.

**تشریح: دلیله**⊛او د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې، چه تیر شوې حدیث یعنی د نبی کریم ﷺ ارشاد «الك بینة فقال لا. فقال لك یمینه» سره دا خبره ثابته ده، چه قسم کې د مدعی حق ثابتیدل، ګواهانو قائمولو نه عاجز کیدلو باندې مرتب دی. نو ترکومه پورې چې مدعی د ګواهانو قائمولو نه عاجز نه وی. تر هغه وخته پورې به قسم د مدعی حق نه وی. لکه که ګواهان د قاضی په مجلس کې موجود وی. نو بالاتفاق قسم د مدعی حق نه دې. بهرحال هرکله چې د بینه په موجودګۍ کې قسم د مدعی حق نه دې. نو مدعی که د بینه پیش کاوه نه عاجز نه وی. یعنی بینه په ښار کې موجود وی. نو مدعی ته به د مدعی علیه نه د قسم طلب کاوه هیڅ حق نه وی.

وَمُحَمَّدٌ مَعَ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله فِيمَا ذَكَرَهُ الْخَصَّافُ، او د امام خصاف رحمه الله د بیان مطابق امام محمد د امام ابویوسف رحمه الله سره دې. وَمَعَ أَبِي حَنِيفَةَ فِيمَا ذَكَرَهُ الطَّحَاوِيُّ رحمه الله او د طحاوی رحمه الله د بیان مطابق ابوحنیفه رحمه الله سره دې.

**تشریح:** مرغینانی رحمه الله فرمائی، چه د امام محمد رحمه الله نه دوې (دوه) روایتونه دی. د امام خصاف د روایت مطابق امام محمد رحمه الله د امام ابویوسف رحمه الله سره دې. او د امام طحاوی رحمه الله د روایت مطابق امام محمد

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة كذا في (تنوير الأبصار ٩٤\٤٧٤) ومجمع الأنهر (٣\٣٥٣) والدر المنتقى (٣\٣٥٣) نقلاً عن القول الراجح (١٢\١٧٠)



د امام ابوحنیفه رحمه الله سره دې. په غاية البيان کې مرغینانی رحمه الله باندې اعتراض شوې دې. فرمائی، چه د امام محمد رحمه الله قول نه خصاف رحمه الله نقل کړې دی. اونه طحاوی رحمه الله نقل کړې دې. خو صاحب دهدایه رحمه الله د دوی دواړو بزرګانو په حواله سره د امام محمد رحمه الله قول پته نه لګی. د کوم ځائې نه را نقل کړې دې. والله اعلم.

**د مدعی نه د قسم اخستلو حکم**

قَالَ ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی. (وَلَا تُرَدُّ الْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعِي) چې یمین به مدعی باندې نشی واپس کولې. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. {الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي، مدعی باندې بینه دی. وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ} (١) اومنکر باندې یمین دې. قَسَّمَ د الله رسول ﷺ ویش فرمائیلې دې. وَالْقِسْمَةُ تُنَافِي الشَّرِكَةَ، او ویش د شرکت منافی دې. وَجَعَلَ جِنْسَ الْأَيْمَانِ عَلَى الْمُنْكِرِينَ او جنس ایمان ئې منکرینو باندې مقرر کړې دې. وَلَيْسَ وَرَاءَ الْجِنْسِ شَيْءٌ، او د جنس نه علاوه هیڅ شی پاته نه دې.

**تشریح: مذهب الاحناف** رحمهم الله ⊛ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی، چه مدعی باندې په هیڅ حال کې هم قسم نشته. یعنی داسې به کله هم نه کیږی، چه د مدعی په قسم خوړلو باندې قاضی دده په حق کې حکم صادر کړی.

**دلیلنا**⊛ رسول الله ﷺ د مدعی او مدعی علیه په منځ کې دوې (دوه) شیان ویش کړی دی. یعنی مدعی باندې ئې بینه مقرر کړی دی. او مدعی علیه باندې ئې قسم مقرر کړې دې. او ویش د شرکت منافی دې. نو رسول الله ﷺ په ,,الیمین،، کې الف لام جنس سره ذکر کړې دې. او جنس قسم ئې په منکر یعنی مدعی علیه باندې ضروری کړې دې. او د جنس نه علاوه بل څه شی پاته نه دې. نو هرکله چې جنس قسم مدعی علیه سره مختص شو. نو اوس به دقسم هیڅ برخه داسې نه وی، چه هغه مدعی لپاره وی. او هرکله چې مدعی لپاره د قسم هیڅ برخه پاتې نشوه. نو مدعی باندې به قسم هم نه راځی.

وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ او په دې حکم کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې.

**تشریح: مذهب الشافعی** رحمه الله ⊛ په پورتنی حکم کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې. دا یو روایت د امام مالك او امام محمد رحمهما الله هم دې. دوی فرمائی، چه کله مدعی سره بالکل ګواهان نه وی. او قاضی مدعی علیه نه قسم واخستلو. خو هغه د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. نو قسم به مدعی اړخ ته واپس کیږی. نو که مدعی قسم اوخوړلو. نو قاضی به د هغه په قسم باندې د هغه په حق کې فیصله ورکوی. دغه ډول که مدعی یو ګواه پیش کړو. او دوهم ګواه نه عاجز شو (او پیش ئې نکړې شو). نو بیا به هم قسم مدعی اړخ ته واپس کیږی. نو که دې ګواه سره مدعی قسم اوخوړلو. نو قاضی به دده په حق کې فیصله صادر کوی. او که مدعی د قسم نه انکار اوکړو. نو د مدعی په حق کې به فیصله نه ورکوی.

**په ملك مطلق کښې د قابض د بینو حکم**

قَالَ ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی. (وَلَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ صَاحِبِ الْيَدِ فِي الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ) چې په ملك مطلق کې به د قابض بینه نه قبلیږی. (وَبَيِّنَةُ الْخَارِجِ أَوْلَى). او د غیر قابض بینه اولی (او غوره) دی.

**تشریح: مذهب الاحناف في المسئلة**⊛مسئله داده، که یو سړې په مال معین باندې قابض دې. او په دې باندې یو غیر قابض د ملك مطلق دعوه اوکړله. یعنی د ملك دعوه ئې اوکړله. خو د مالك کیدلو سبب ئې بیان نکړو. مثلاً دا ئې اوونیل، چه دا شی زما ملك دې. او ددې قابض په قبضه کې په ناحق طور دې. نو د ملك مطلق په صورت کې که قابض د خپل مالك کیدلو باندې بینه پیش کړل. او غیر قابض پخپل مالك کیدلو

(١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (٥\٥٤١) رقم ١٠٨٠٣_

باندې بينه پيش كړل.نو زموږ په نيز به د غيرقابض بينه اولى ( او غوره) وي.نوهم دا به قبلولې شي.اود غيرقابض بينه به نشي قبلولې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ :امام شافعي رحمه الله فرمائي. يُقْضَى بِبَيِّنَةِ ذِي الْيَدِ چې د قابض په بينه به فيصله كولې شي. لِاعْتِضَادِهَا بِالْيَدِ خكه چې د قبضه په وجه بينه مضبوط شو. فَيَتَقَوَّى الظُّهُورُ نو ظهور( د حق) به هم مضبوط وي. وَصَارَ كَالنِّتَاجِ وَالنِّكَاحِ وَدَعْوَى الْمِلْكِ مَعَ الْإِعْتَاقِ وَالْإِسْتِيلَادِ وَالتَّدْبِيرِ. اودا د نتاج ( د څاروى بچې پيدا كيدل) او نكاح، او دعوه د ملك مع الاعتاق يا مع التدبير پشان شو.

تشريح: مذهب الشافعي رحمه الله ﴿ حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د قابض گواه به قبلولې شي.او هم دده په حق كي به فيصله وركولې شي.خكه چې د قابض گواهي دده د قبضې په وجه مضبوطه شوې ده.او هركله چې د قابض گواهي مضبوطه شوه.نو په دې سره به د حق ظهور هم مضبوط وي.او په گومې گواهۍ سره چې د حق ظهور زيات مضبوط او واضح وي.هم هغه باندې فيصله كول واجب دي.نود قابض د گواهانو د گواهۍ مطابق به د قابض په حق كي فيصله صادر كولې شي.اودا داسې شوه.لكه نتاج( د څاروى بچې پيدا كيدل)، او نكاح.مثلاً د خالد په قبضه كي يوه وزه ده.هغې باندې حامد دعوه اوكړله.او هريو بينه پيش كړل.چه دا وزه زما په ملك كي زما د مملوكه وزه نه پيدا شوې ده.نو په دې صورت كي به د قابض بينه قبلولې شي.دغه ډول په يوه ښځه باندې دوې (دوه) سړو د نكاح دعوه اوكړله.اودا ښځه دوى دواړو كي د يو په قبضه كي ده.نو په دې صورت كي به هم د قابض گواهان قبلولې شي.

وَلَنَا او زموږ دليل دادې. أَنَّ بَيِّنَةَ الْخَارِجِ أَكْثَرُ إِثْبَاتًا أَوْ إِظْهَارًا چې د غيرقابض بينه زيات مثبت يا زيات ښكاره كونكى ( د حق) دى. لِأَنَّ قَدْرَ مَا أَثْبَتَهُ الْيَدُ خكه چې په خومره اندازه قبضې ثابت كړې دې. لَا يُثْبِتُهُ بَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ د قابض بينه هغه هم نه دې ثابت كړې. إِذِ الْيَدُ دَلِيلُ مُطْلَقِ الْمِلْكِ، خكه چې قبضه خو د مطلق ملك دليل دې.

تشريح: دليلنا ﴿ زموږ دليل دادې.چه د غيرقابض بينه دده لپاره ملك ثابتوى.اود قابض بينه قابض لپاره ملك نه ثابتوى. خكه چې د قابض ملك د هغه په قبضه سره ثابتيږى.نود قابض بينه به هغه لپاره مؤكد وى.كوم چې په ملك سره ثابتيږى.او تاكيد موجود لپاره د وصف ثابتولو نوم دې.د اصل ملك ثابتولو نوم نه دې.بهرحال هركله چې د قابض بينه د ثابت شوى ملك لپاره مؤكد دى.اود غير قابض بينه د ملك اثبات يا اظهار دې.نود قابض د قبضې په وجه به ظاهرى ملك باندې د غيرقابض بينه ته ترجيح وركولې شي. او ددې ترجيح په وجه به دده بينه قبلولې شي.

بِخِلَافِ النِّتَاجِ په خلاف د نتاج( د څاروى بچې پيدا كيدل)، لِأَنَّ الْيَدَ لَا تَدُلُّ عَلَيْهِ، خكه چې قبضه په نتاج باندې دلالت نه كوى.

تشريح: الجواب عن قياس الشافعي رحمه الله ﴿ددې په خلاف نتاج دې.چه دې باندې قبضه دلالت نه كوى.دغه ډول اعتاق، استيلاد، او تدبير، او هغه ولاء، كوم چې په دې سره ثابتيږى.هغې باندې قبضه دلالت نه كوى.بلكه قبضه سره صرف ملك ثابتيږى.او نتاج وغيره قبضه سره نه ثابتيږى.حاصل داچه نتاج وغيره د قابض او غيرقابض د دواړو گواهانو يوشان ثابت كړې دې.نو اوس د ترجيح ارتيا راپيښ شو.نو موږ د قابض گواهانو ته د هغه د قبضې په وجه ترجيح وركړله.اود ملك مقيد په صورت كي د قابض د گواهانو قبلولو فيصله مو اوكړله.

وَكَذَا عَلَى الْإِعْتَاقِ وَأُخْتَيْهِ وَعَلَى الْوَلَاءِ الثَّابِتِ بِهَا دغه ډول اعتاق، او استيلاد، او تدبير او په هغه ولاء باندې كوم چې ددې نه ثابتيږى.قبضه دلالت نه كوى.

تشريح: نظائره ﴿ ① دغه ډول كه د شاهد په قبضه كي يو غلام وى.او په ده باندې زاهد دعوه اوكړله.چه دا زما غلام دې.دا ما آزاد كړې دې.نو په دې صورت كي به هم د قابض بينه قبلولې شي. ② دغه ډول كه يوه وينځه



د يو په قبضه كي وي.او بل غيرقابض دعوه اوكړله.چه ما دا وينځه پخپل ملك كي راوستې ده.او ام ولد مې جوړه كړې ده.او په دې ئې بينه قائم كړل.او قابض اووئيل.چه دا ما ام ولد جوړه كړې ده.او په دې ئې بينه قائم كړل.نو په دې صورت كي به هم د قابض بينه قبلولې شي. ③ دغه ډول كه د يو كس په قبضه كي يو غلام دې.او هغه دعوه اوكړله.چه ما دا مدبر جوړ كړې دې.او په دې ئې بينه قائم كړل.اويو غيرقابض سړي دعوه اوكړله.چه دا غلام زما دې.ما دا مدبر جوړ كړې دې.او په دې ئې بينه قائم كړل.نود قابض بينه به قبلولې شي.نو لكه څنگه چې په دې مسئلوكي يعنى په ملك مقيد(يعنى هغه ملك چې د ملك سبب په كي خودلې شوې وى )كي د قابض بينه قبلولې شي.دغه ډول به په ملك مطلق كي هم د قابض بينه قبلولې شي.

## د مدعى عليه د قسم په انكار كولو سره د قاضى فيصله وركول

قَالَ وَإِذَا نَكَلَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ عَنِ الْيَمِينِ او كله چې مدعى عليه د قسم نه انكار اوكړو. قُضِيَ عَلَيْهِ بِالنُّكُولِ نو قاضى به د انكار په وجه دده په خلاف فيصله وركوى. وَأَلْزَمَهُ مَا ادُّعِيَ عَلَيْهِ او مدعى چې په ده باندې څه دعوه كړې ده.هغه به دده په ذمه لازم كړى.

تشريح: مذهب الاحناف رحمهم الله ﴿ابو الحسين قدورى رحمه الله فرمائي.چه د مدعى د بينه نه پيش كاوه په صورت كي كه مدعى عليه دقسم خوړلو نه انكار اوكړو.نود مدعى عليه د انكار په وجه به قاضى د مدعى عليه خلاف حكم وركوى.او مدعى چې كومه دعوه په ده باندې كړې ده.قاضى به هغه د مدعى عليه په ذمه لازموى.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ :او امام شافعي رحمه الله فرمائي. لَا يُقْضَى بِهِ چې قاضى به د انكار په وجه مدعى عليه باندې حكم نه وركوى. بَلْ يَرُدُّ الْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعِي، بلكه قسم به مدعى باندې واپس كوى. فَإِذَا حَلَفَ نو كه مدعى قسم اوخوړلو. يُقْضَى بِهِ نو قاضى به هغه لپاره حكم وركوى.

تشريح: مذهب الشافعي رحمه الله ﴿حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د مدعى عليه په انكار كاوه باندې قاضى ته د فيصلې وركاوه اجازت نشته.بلكه قسم به په مدعى باندې واپس كولې شي.كه مدعى قسم اوخوړلو.نو قاضى به د هغه په حق كي حكم صادر كړى.اوكه مدعى هم انكار اوكړو.نو مقدمه به خارجولې شي.

لِأَنَّ النُّكُولَ يَحْتَمِلُ التَّوَرُّعَ عَنِ الْيَمِينِ الْكَاذِبَةِ خكه چې د مدعى عليه د قسم نه انكار كول ددې خبرې احتمال لرى.چه مدعى عليه د دروغ قسم نه پرهيز كول غواړى. وَالتَّرَفُّعَ عَنِ الصَّادِقَةِ اود رشتيا قسم نه احتياط كول غواړى. وَاشْتِبَاهَ الْحَالِ ( بهرحال) د مدعى عليه انكار د اشتباه حال احتمال لرى. فَلَا يَنْتَصِبُ حُجَّةً مَعَ الْاِحْتِمَالِ، نودا انكار دې احتمال سره حجت نشي كيدلې. وَيَمِينُ الْمُدَّعِي دَلِيلُ الظُّهُورِ اود مدعى قسم خوړل د حق ښكاره كيدلو دليل دې. فَيُصَارُ إِلَيْهِ. نو هم دې اړخ ته به رجوع كولې شي.

تشريح: دليله ﴿ د مدعى د قسم خوړلو په صورت كي به د هغه په حق كي فيصله څكه صادركولې شي.چه د مدعى عليه د قسم نه انكار كول ددې خبرې احتمال لرى. ① چه شايد مدعى عليه د دروغ قسم نه پرهيز كول غواړى. ② يا د رشتيا قسم نه احتياط كول غواړى. غرض داچه د مدعى عليه حال مشتبه شو.او په دې احتمال، او اشتباه حال سره د مدعى عليه انكار د مدعى په حق كي حجت نشي واقع كيدلې.اود مدعى قسم خوړل د مدعى په حق باندې د كيدلو ښكاره دليل دې.نود مدعى قسم اړخ ته به رجوع كولې شي.او قاضى به مدعى نه د قسم مطالبه كوى.

وَلَنَا او زموږ دليل دادې. أَنَّ النُّكُولَ دَلَّ عَلَى كَوْنِهِ بَاذِلًا چې د مدعى عليه د قسم نه انكار په بذل خبره باندې دلالت كوى.چه مدعى عليه مدعى به په زړه ورتيا ( بهادرۍ) سره وركول غواړى. [illegible] د مدعى د دعوه اقرار كونكې دې. إِذْ لَوْلَا ذَلِكَ لَأَقْدَمَ عَلَى الْيَمِينِ إِقَامَةً لِلْوَاجِبِ خكه كه داسې نه وې.نو هغه به قسم خوړلو ته وړاندې شوې وو.چه كوم څه شريعت واجب كړې دى.هغه ادا كړى. وَدَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْ نَفْسِهِ اود خپل خان

نه ضرر لرې کړي.

تشريح: دليلنا ۞ د مدعى عليه د قسم خوړولو نه انكار كول په دې خبره باندې دلالت كوي. چه مدعى عليه مدعى به په بهادرۍ او زړه ورتيا سره رد كول غواړي. يعني دا وائي. چه د مدعى دعوه غلطه ده. خو زه قسم نه خورم. او مدعى به اداكړم. يعني په ناحقه اداكول مې قبول دي. خو قسم خوړل راته منظور نه دي. يا مدعى عليه دده د دعوه اقرار كوي. يعني دا وائي. چه د مدعى دعوه صحيح ده. نو زه به دروغ قسم نه خورم. وجه ددې داده. كه په دې كې يوه خبره هم نه وي. نو هغه به د شريعت واجب كړې شوې قسم ادا كاوه د پاره، او د خپل ځان نه ضرر لرې كاوه لپاره د قسم خوړلو اقدام ضرور كړې وو. نو دده د قسم خوړلو نه انكار كول، ددې خبرې دليل دې. چه هغه د مدعى د دعوه اقرار كوي. يا قسم پريږدي. او بهادرۍ سره مدعى به اداكول غواړي.

فَتَرَجَّحَ هٰذَا الْجَانِبُ، نو دا اړخ به راجح وي. وَلَا وَجْهَ لِرَدِّ الْيَمِيْنِ عَلَى الْمُدَّعِيْ لِمَا قَدَّمْنَاهُ او مدعى باندې د قسم واپس كاوه هيڅ وجه نشته. لكه چې مونږه وړاندې بيان كړې دي.

تشريح: الجواب عن دليل الشافعي رحمه الله ۞ د امام شافعي رحمه الله د بيان كړي افعالو په مقابله كې به دې احتمال ته ترجيح حاصل وي. كوم چې د احنافو د دليل په ضمن كې تير شو يعني د مدعى عليه د قسم خوړولو نه انكار كول په دې خبره باندې دلالت كوي. چه مدعى عليه مدعى به په بهادرۍ او زړه ورتيا سره رد كول غواړي. او هركله چې دې احتمال ته ترجيح حاصله ده. نو د تير شوي دليل ( چې بينه مدعى باندې دي. او يمين منكر باندې دي) په وجه مدعى اړخ ته د قسم ګرځولو هيڅ وجه نشته.

## د قاضي په مدعى عليه باندې درې ځله قسم پيش كول او فيصله كول

قَالَ (وَيَنْبَغِيْ لِلْقَاضِيْ) و قاضي لپاره مناسب دي. (أَنْ يَّقُوْلَ لَهٗ) چې هغه مدعى عليه ته داسې اووائي. (إِنِّيْ أَعْرِضُ عَلَيْكَ الْيَمِيْنَ ثَلَاثًا) چې زه په تا باندې درې ځله قسم پيش كوم. (فَإِنْ حَلَفْتَ) نو كه تا قسم اوخوړلو. (وَإِلَّا قَضَيْتُ عَلَيْكَ بِمَا ادَّعَاهُ) خو صحيح ده. ګني زه به تا باندې د هغه شي فيصله وركوم. د كوم چې مدعى دعوه كړې ده. وَهٰذَا الْإِنْذَارُ لِإِعْلَامِهٖ بِالْحُكْمِ او دا يرول هغه ته د قسم د انكار د حكم خبر وركاوه لپاره دي. إِذْ هُوَ مَوْضِعُ الْخَفَاءِ ځكه چې دا د پټولو مقام دې.

تشريح: ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. كه مدعى سره بينه نه وي. او مدعى عليه د قسم لپاره تيار شو. نو قاضي به مدعى عليه ته دا وائي. چه زه تا باندې درې ځله قسم پيش كوم. كه تا قسم اوخوړلو. نو ډيره ښه ده. يعني ته به د مدعى د دعوه نه خلاص شې. او كه تا قسم اونه خوړلو. بلكه د قسم خوړلو نه دې انكار اوكړو. نو زه به ستا خلاف د مدعى د دعوه حكم وركوم.

مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د قاضي دا يرول، يعني مدعى عليه ته دا وئيل. چه د انكار په صورت كې به ستا خلاف فيصله وركوم. په دې غرض دی. چه هغه ته د قسم نه د انكار حكم اوخودلې شي. ځكه چې دا د پټولو مقام دې. يعني ممكن ده. چه مدعى عليه ته د امام شافعي رحمه الله مذهب معلوم وي. چه د قسم په انكار سره مدعى عليه باندې حكم نشي وركولې. بلكه مدعى باندې قسم واپس كولې شي. نو قاضي به دې د خپل مذهب ( چې د مدعى عليه د انكار نه روسته د هغه خلاف حكم وركولې شي ) نه خبردار كړو. چه مدعى عليه باندې دا خبره پټه پاتې نشي.

قَالَ (فَإِذَا كَرَّرَ الْعَرْضَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ) نو هركله چې قاضي مدعى عليه باندې درې ځله قسم پيش كړو. (قَضٰى عَلَيْهِ بِالنُّكُوْلِ) نو د انكار په وجه به د هغه خلاف حكم وركوي. وَهٰذَا التَّكْرَارُ ذَكَرَهُ الْخَصَّافُ رَحِمَهُ اللّٰهُ او درې ځله قسم پيش كول خصاف رحمه الله ذكر كړي دي. لِزِيَادَةِ الْاِحْتِيَاطِ ځكه چې دې كې زيات احتياط، وَالْمُبَالَغَةِ فِيْ إِبْلَاءِ



الْعُذْرِ، او د عذر په ښكاره كولو كې مبالغه ده.

تشريح: ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه هركله قاضي مدعى عليه باندې درې ځله قسم پيش كړو. او مدعى عليه هرځل انكار اوكړو. نو اوس به قاضي دده خلاف حكم وركوي. مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا تكرار يعني درې ځله قسم پيش كول د امام صاحب رحمه الله د بيان مطابق د استحباب په درجه كې دي. د شرط او واجب په درجه كې نه دي. او ددې مقصد زيات احتياط او په عذر ښكاره كاوه كې مبالغه ده. لكه ځنګه چې مرتد ته درې ورځې مهلت وركولې شي. نو دا درې ورځې مهلت وركول مستحب دي واجب نه دي.

فَأَمَّا الْمَذْهَبُ بهرحال مذهب دادې. أَنَّهٗ لَوْ قَضٰى بِالنُّكُوْلِ بَعْدَ الْعَرْضِ مَرَّةً كه د يو ځل پيش كولو نه روسته د انكار په وجه قاضي حكم وركړو. جَازَ لِمَا قَدَّمْنَاهُ نو بيا هم جائز دې. د هغه دليل په وجه كوم چې موږ وړاندې بيان كړې دي. هُوَ الصَّحِيْحُ وَالْأَوَّلُ أَوْلٰى، او هغه صحيح دې. او رومبې غوره دې.

تشريح: بهرحال درې ځل قسم پيش كول د احتياط په وجه دي. ګني مذهب مفتى به حكم دادې. كه قاضي د يوځل قسم پيش كاوه نه روسته د مدعى عليه د انكار په بنا (بنياد) باندې حكم وركړو. نو بيا هم جائز دې. او دليل وړاندې تيرشوې دې. چه مدعى عليه انكار اوكړو. نو مدعى به په بهادرۍ سره وركول غواړي. يا د مدعى د دعوه اقرار كوي. او په دې دواړوكې په هيڅ يو كې تكرار شرط نه دې. نو په قسم پيش كاوه كې به هم تكرار شرط نه وي. مرغيناني رحمه الله فرمائي. هم دا قول صحيح دې. يعني د مدعى عليه د يو ځل انكار نه روسته كه قاضي فيصله وركړله. نو دا فيصله به نافذ وي. اګرچه بعض خلګ وائي. چه د يوځل انكار نه روسته كه قاضي حكم وركړو. نو دا حكم به نافذ نه وي. مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه رومبې غوره دې. يعني يوځل انكار كاوه نه روسته فيصله وركول اګرچه جائز ده. خو بهتره داده. چه درې ځله د قسم پيش كاوه نه روسته قاضي حكم صادر كړي.

ثُمَّ النُّكُوْلُ قَدْ يَكُوْنُ حَقِيْقِيًّا كَقَوْلِهٖ لَا أَحْلِفُ، بيا انكار كله حقيقي وي. لكه دده قول چه، ،زه به قسم نه خورم، ، وَقَدْ يَكُوْنُ حُكْمِيًّا او كله حكمي وي. بِأَنْ يَّسْكُتَ، په دې طريقه چې هغه خاموش شي. وَحُكْمُهٗ حُكْمُ الْأَوَّلِ او ددې حكم هم د رومبي د حكم پشان دې. إِذَا عَلِمَ أَنَّهٗ لَا آفَةَ بِهٖ مِنْ طَرَشٍ أَوْ خَرَسٍ په دې شرط چې دا خبره معلومه شي. چه مدعى عليه ته د كوڼتوب يا ګونګې كيدلو هيڅ آفت نه وو. هُوَ الصَّحِيْحُ هم دا قول صحيح دې.

تشريح: مصنف رحمه الله فرمائي. چه انكار كله حقيقي وي. مثلاً د قاضي د قسم پيش كاوه نه روسته مدعى عليه اووئيل چه، ،زه به قسم نه خورم، ، او كله حكمي وي. مثلاً د قاضي د قسم پيش كاوه نه روسته مدعى عليه سكوت اختيار كړو. مصنف د هدايه رحمه الله فرمائي. چه د حكمي انكار حكم هم هغه دې. كوم حكم چې د حقيقي انكار دې. په دې شرط چې دا خبره معلومه شي. چه مدعى عليه دځه آسماني آفت په وجه نه ګڼې دې. او نه ګونګې دې. هم دا صحيح ده. يعني مدعى عليه باندې دقسم پيش كاوه نه روسته كه مدعى عليه سكوت اختيار كړو. نو د بعض حضراتو خيال دې. چه په دې اړه كې به د خلګو نه معلومات كولې شي. چه دا مدعى عليه كوڼ يا ګونګا خو نه دې. كه خلګو اووئيل. چه داسې نه دې. نو قاضي به دې منكر اوګرخوي. او دده خلاف به فيصله وركوي. خو بعض خلګ وائي. چه دې به قيد كولې شي. تردې چې دې ځواب وركړي. رومبې قول صحيح دې.

## د نكاح په دعوى كښې د منكر نه د قسم اخستلو حكم

قَالَ (وَإِنْ كَانَتِ الدَّعْوٰى نِكَاحًا) او كه د نكاح دعوه وي. (لَمْ يُسْتَحْلَفِ الْمُنْكِرُ) عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به منكر نه قسم نشي اخستلې. وَلَا يُسْتَحْلَفُ عِنْدَهٗ فِي النِّكَاحِ وَالرَّجْعَةِ وَالْفَيْءِ فِي الْإِيْلَاءِ وَالرِّقِّ وَالْاِسْتِيْلَادِ وَالنَّسَبِ وَالْوَلَاءِ وَالْحُدُوْدِ وَاللِّعَانِ. اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به نكاح كې ،رجعت كې ، د ايلاء په رجوع كولو كې ، رقيت كې ،استيلاد كې ، نسب كې ، ولاء، حدود، او لعان كې قسم نشي اخستلې.

**تشريح: مذهب ابی حنيفة رحمه الله في المسئلة** ۞ نهه شیان دامام ابوحنیفه رحمه الله په نيز داسې دی.چه هغې کې د منکر یعنی مدعی علیه نه قسم نشی اخستلې.او هغه نهه شیان دادی.① نکاح: یعنی سړی په یوې ښځې باندې دعوه اوکړله.چه ما ددې ښځې سره نکاح کړې ده.او ښځه ددې انکار کوی.یا ښځې د نکاح دعوه اوکړله.او سړې ددې منکر دې.② رجعت: یعنی سړی خپلې ښځې ته طلاق رجعی ورکړو.اود هغې عدت پوره شو.ددې نه روسته سړی دعوه اوکړله.چه د عدت په زمانه کې ده رجعت کړې وو.خو ښځه ددې منکره ده.③ ایلاء رجعت: یعنی د ایلاء موده تیریدلو نه روسته سړی دعوه اوکړله.چه ما د ایلاء په موده کې دې ته رجوع کړې ده.او ښځه ددې منکره ده.یا ښځې د رجوع کاوه دعوه اوکړله.او سړی ددې انکار اوکړو.④ رقیت: یعنی یوسړی د یو مجهول النسب سړی په اړه کې دعوه اوکړله.چه دا زما غلام دې.او مجهول النسب ددې انکار اوکړو.یا مجهول النسب دعوه اوکړله.چه زه دده غلام یم.اوهغه انکار اوکړو.⑤ استیلاد: یعنی یوې وینځې خپل مولا باندې دعوه اوکړله.چه ما دده د نطفې نه یو بچې راوړلې دې.او مولا ددې انکار اوکړو.دې صورت کې به عکس نه جاری کیږی.ځکه که مولا دعوه اوکړله.نود مولا په اقرار سره به استیلاد ثابتیږی.اود وینځې انکار اړخ ته به توجه نشی ورکولې.⑥ نسب: یعنی یوسړی په یو مجهول النسب باندې دعوه اوکړله.چه دا زما زوې دې.یا دا زما پلار دې.او مجهول النسب ددې انکار اوکړو.یا مجهول النسب ددې دعوه اوکړله.او دې سړی انکار اوکړو.⑦ ولاء: یعنی یو سړی د یو مجهول النسب سړی په اړه کې دعوه اوکړله.چه ما دا آزاد کړې دې.او زه دده مولا یم.خو مجهول النسب ددې انکار اوکړو.یا مجهول النسب ددې خبرې دعوه اوکړله.او دې سړی انکار اوکړو.⑧ حدود: یعنی یو سړی په بل کس باندې دداسې شي دعوه اوکړله.چه هغه حد واجبوی.مثلاً د زنا، یا غلا دعوه ئې اوکړله.او هغه دوهم سړې ددې منکر دې.

⑨ لعان: یعنی ښځې خپل میړه باندې دعوه اوکړله.چه ده په ما باندې داسې تهمت لګولې دې.چه هغه لعان واجبوی.خو میړه ددې انکار اوکړو.د لعان نه سوا واړه شیان قدوری کې ذکر دی.او لعان اګرچه قدوری کې مذکور نه دې.خو په جامع صغیر کې مذکور نه دې.

> وَقَالَا:او صاحبین رحمهما الله فرمائی.يُسْتَحْلَفُ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ(۱) إِلَّا فِي الْحُدُوْدِ وَاللِّعَانِ. چې په دې ټولو کې به قسم اخستلې شی.سوا د حدود او لعان نه.وَصُوْرَةُ الْاِسْتِيْلَادِ:او د استیلاد صورت دادې.أَنْ تَقُوْلَ الْجَارِيَةُ چې وینځه اووائی.أَنَا أُمُّ وَلَدٍ لِمَوْلَايَ چې زه د خپل مولا ام ولد یم.وَهٰذَا ابْنِي مِنْهُ اودا زما زوې دده نه پیدا شوې دې.وَأَنْكَرَ الْمَوْلٰى،او مولا ددې نه انکار اوکړی.لِأَنَّهُ لَوِ ادَّعَى الْمَوْلٰى ځکه که مولا دعوه اوکړله.ثَبَتَ الْاِسْتِيْلَادُ بِإِقْرَارِهِ،نو استیلاد به دده په اقرار سره ثابتیږی.وَلَا يُلْتَفَتُ إِلٰى إِنْكَارِهَا. اود وینځې انکار اړخ ته به توجه نشی کیدلې.

**تشريح: مذهب الصاحبين رحمهما الله** ۞ صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه حدود او لعان نه علاوه کې به منکر یعنی مدعی علیه نه قسم اخستلې شی.حاصل داچه په حدود او لعان کې به بالاتفاق مدعی علیه یعنی منکر نه قسم نشی اخستلې.خوپه پاته اووه څیزونو کې اختلاف دې.یعنی د امام صاحب رحمه الله په نیز په دې اووه څیزونو کې به قسم نشی اخستلې.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به اخستلې شی.د حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز د قسم نه اخستلو مطلب دادې.که مدعی سره بینه نه وی.نو مقدمه به خارجولې شی.او قاضی لپاره به د مدعی په حق کې فیصله ورکول جائز نه وی.

> لَهُمَا:د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.أَنَّ النُّكُوْلَ إِقْرَارٌ چې د قسم نه انکار کول یو اقرار دې.لِأَنَّهُ يَدُلُّ عَلٰى كَوْنِهِ كَاذِبًا فِي الْإِنْكَارِ عَلٰى مَا قَدَّمْنَاهُ،ځکه چې د مدعی علیه د قسم نه انکارکول، په دې خبره باندې دلالت

(۱) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في نتائج الأفكار(۱۶۹\۷) والخانية ۹۲، ۹۳) وردالمحتار(۴۷۳\۴) ومجمع الأنهر(۳۵۱\۳)نقلاً عن القول الراجح (۱۷۱\۲)



> کوی.چه مدعی علیه د دعوه په انکار کې دروغجن دې.لکه څنګه چې موږ وړاندې بیان کړی دی.إِذْ لَوْلَا ذٰلِكَ لَأَقْدَمَ عَلَى الْيَمِيْنِ الصَّادِقَةِ إِقَامَةً لِلْوَاجِبِ فَكَانَ إِقْرَارًا،نود قسم نه انکار کول د دعوه اقرار دې.أَوْ بَدَلًا عَنْهُ،یا د اقرار بدل دې.

**تشريح: دليلهما** ۞ د مدعی علیه یعنی منکر د قسم نه انکار کول،یو قسم له د مدعی د دعوه اقرار کول دی.ځکه چې قسم خوړلو سره انکار کول ددې خبرې دلیل دې.چه مدعی علیه د مدعی دعوه نه په انکار کولو کې بالکل دروغجن دې.ځکه که مدعی علیه د دعوه په انکار کې دروغجن نه وو.نو هغه به قسم خوړلو ته ضرور وړاندې شوې وو.غرض داچه د مدعی علیه د قسم خوړلو نه انکار کول، د مدعی د دعوه اقرار دې.یا د اقرار بدل او خلیفه دې.او اقرار په ذکر شوی ټولو څیزونو کې جاری کیږی.نوانکار عن الیمین به هم په ټولو څیزونو کې جاری کیږی.او انکار عن الیمین به هغه وخت جاری کیږی.کله چې مدعی علیه نه قسم واخستلې شی.نو ثابته شوه.چه په ذکرشوی مسئلو کې به مدعی علیه نه قسم اخستلې شی.

> وَالْإِقْرَارُ يَجْرِي فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ،او په دې څیزونو کې اقرار جاری کیږی.لٰكِنَّهُ إِقْرَارٌ فِيْهِ شُبْهَةٌ،خودا داسې اقرار دې.چه دې کې شبه ده.وَالْحُدُوْدُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ،او حدود د شبهاتو په وجه لرې کیږی.وَاللِّعَانُ فِي مَعْنَى الْحَدِّ. او لعان د حد په معنی کې دې.

**تشريح: وجه استثناء الاستحلاف في الحدود واللعان** ۞ خوانکار عن الیمین د مدعی د دعوه داسې اقرار دې.چه دې کې شبه ده.ځکه چې یمین نه انکار کول، د دعوه په اړه کې فی نفسه سکوت دې.او سکوت اقرار وی.خو سره د شبه.اود شبهاتو په وجه حدود لرې کیږی.نود مدعی علیه په دې اقرار مع الشبه سره به مدعی علیه باندې حد نه جاری کیږی.او هرکله چې په دې صورت کې مدعی علیه باندې حد نه جاری کیږی.نو په دې صورت کې به انکار هم نه جاری کیږی.یعنی په دې انکار به د قاضی د فیصلې ور کاوه فائده هم نه مرتب کیږی.او هرکله چې په دې انکار باندې فائده مرتب نشوه.نو مدعی علیه څخه به قسم هم نشی اخستلې.بهرحال حدود کې به مدعی علیه نه قسم نشی اخستلې.او پاتې شو لعان،نودا د حد په معنی کې دې.ځکه چې لعان د میړه په حق کې د حد قذف قائم مقام وی.اود ښځې په حق کې د حد زنا قائم مقام وی.لکه څنګه چې کتاب اللعان کې تیر شوی دی.نو هرکله چې لعان د حد په معنی کې دې.نو لعان کې به هم انکار نه جاری کیږی.او مدعی علیه څخه به قسم نشی اخستلې.

> وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى اود امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.أَنَّهُ بَذْلٌ لِأَنَّ مَعَهُ لَا تَبْقَى الْيَمِيْنُ وَاجِبَةً چې د قسم نه انکار کول بذل یعنی په بهادرئ سره مال ورکول دی.او بذل سره قسم واجب نه پاتې کیږی.لِحُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ ځکه چې مقصود حاصل شو.وَإِنْزَالُهُ بَاذِلًا أَوْلٰى كَيْ لَا يَصِيْرَ كَاذِبًا فِي الْإِنْكَارِ،او دې باذل ګرځول غوره دی.چه دې په انکار کې دروغجن نه وی.وَالْبَذْلُ لَا يَجْرِي فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ. او په دې څیزونو کې بذل نه جاری کیږی.وَفَائِدَةُ الْاِسْتِحْلَافِ الْقَضَاءُ بِالنُّكُوْلِ اود قسم فائده داده.چه انکار باندې حکم ورکړې شی.فَلَا يُسْتَحْلَفُ،نو قسم به نشی اخستلې.

**تشريح: دليله** ۞ دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه د مدعی علیه د قسم نه انکار کول، بذل یعنی بهادرئ او زړه ورتیا سره د ور کاوه اراده ده.او بذل نه مقصود جګړه لرې کول دی.اود بذل په صورت کې هم جګړه لرې کولې شی.نو بذل سره به قسم واجب نه وی.

**تشريح: تائيد مذهبه من المصنف رحمه الله** ۞ مرغینانی رحمه الله د امام صاحب رحمه الله د اړخه فرمائی.چه د مدعی علیه د قسم نه انکار، د دوې (دوه) خبرو احتمال لری.① یو د مدعی د دعوه اقرار، لکه څنګه چې صاحبین رحمهما الله فرمائی.② دوهم بذل یعنی په بهادرئ او زړه ورتیا سره د مدعی به مال ور کاوه اراده کول.لکه څنګه چې امام صاحب رحمه الله فرمائی.ړومبی صورت یعنی انکار عن الیمین د دعوه اقرار ګڼړلو په صورت کې اګرچه

جګړه ختمیږي.خود دعوه په انکار کي د مدعی علیه دروغجن کیدل نه لازمیږي.نو یو مسلمان ( مدعی علیه) د دروغو د تهمت نه بچ کاوه دپاره، د مدعی علیه انکار عن الیمین بذل باندي محمول کول زیات غوره دی.حاصل داچه دا خبره ثابته شوه.چه د مدعی علیه د قسم نه انکار کول بذل دی.او په ذکر شوی ځیزونوکي بذل نه جاري کیږي.مثلاً یوي ښځي مدعی علیها اووئیل.چه زما او ستا په منځ کي هیڅ نکاح نه ده شوي.یعنی ښځي د نکاح انکار اوکړو.خو ما ستا لپاره د خپل نفس بذل ( قرباني ) اوکړه.نودا بذل صحیح نه دي.نو هرکله چي په دي ځیزونو کي بذل نه جاري کیږي.نود مدعی علیه په انکار یعنی د بذل په وجه به د قاضي حکم هم نه صادریږي.او هرکله چي په دي ځیزونوکي د قاضي حکم نشي صادرکیدلي.نود قسم بي فائدي کیدلو په وجه به ذکرشوی ځیزونوکي مدعی علیه نه قسم نشي اخستلي.

**الاعتراض**®دلته دا اعتراض کیداي شي.چه په ذکرشوی اووه ځیزونوکي د مدعی علیه نه قسم اخستل د حدیث مشهور «اليمين علی من انکر» خلاف دی.ددي ځواب دادي.چه د دي حدیث نه بالاتفاق حدود او لعان خاص کړي شوی دی.نوهرکله چي حدود او لعان خاص کړي شو.نو په دي دواړو باندي قیاس کاوه سره پاته اووه شیان به هم خاص کولي شي.

| |
|---|
| **إِلَّا أَنَّ هٰذَا بَذْلٌ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ** خودا بذل د خصومت لري کاوه لپاره دي. **فَيَمْلِكُهُ الْمُكَاتَبُ وَالْعَبْدُ الْمَأْذُونُ بِمَنْزِلَةِ الضِّيَافَةِ الْيَسِيرَةِ**، نو دده مالك مكاتب او عبدماذون به هم معمولي شان د ملمستیا په مرتبه کي وي. |

**تشریح:** په دي عبارت سره د یو تقدیري سوال ځواب ورکوی هغه دا چي وړاندي د امام صاحب په دلیل کي دا ذکر شو چي انکار عن الیمین بذل دي نو دا اعتراض کیداي شي چي مكاتب او عبد ماذون له ته انکار عن الیمین سره د بذل ور کاوه اجازت نه دي پکار بلکه کوم کس چي آزاد او اختیار مند وی.هغه له د قسم نه په انکار سره د بذل کاوه اجازت پکاردي.ځکه چي بذل کي د تبرع معنی ده.اومکاتب او عبدماذون له د تبرع نشی مالکان کیدي. حالاتکه موږ وینو.چه مكاتب او عبد ماذون له ته هم انکار عن الیمین سره د بذل کاوه اجازت دي؟

**الجواب**®ددي ځواب دادي.چه د تجارت لپاره کوم شیان ضروري او لازمي وی.دوی دواړه ددي ځیزونو مالکان وی.لکه چي عبد ماذون له وغیره ته د مشتري دمعمولي شان ملمستیا اختیار حاصل دي.نودا بذل چونکه د خصومت او جګړي لري کاوه لپاره دي.اود جګړي لري کاوه لپاره ددي نه بغیر خلاصیدل نشته.په دي وجه مكاتب او عبد ماذون له ته ددي بذل اختیار ورکړي شو.

| |
|---|
| **وَصِحَّتُهُ فِي الدَّيْنِ بِنَاءً عَلٰى زَعْمِ الْمُدَّعِي** او په دین کي ددي صحیح کیدل دمدعی د ګمان په بناء باندي دي. **وَهُوَ مَا يَقْبِضُهُ حَقًّا لِنَفْسِهِ**،او په دي مال باندي قبضه د خپل ذاتي حق به طور باندي کوی. **وَالْبَذْلُ مَعْنَاهُ هٰهُنَا تَرْكُ الْمَنْعِ** او دلته کي د بذل معنی منع کول لري کول دی. **وَأَمْرُ الْمَالِ هَيِّنٌ** اود مال معامله آسان ده. |

**تشریح:** په دي عبارت سره هم د یو سوال ځواب دي.سوال دادي.که انکار عن الیمین که بذل دي.لکه څنګه چي امام صاحب رحمه الله فرمانیلی دی.نودا په دیون کي جاري کیدل نه دی پکار.ځکه چي د بذل محل اعیان وی.دیون نه وی.ځکه چي دین په ذمه کي د یو وصف نوم دي.او بذل او اعطاء په اوصافو کي نه جاري کیږي.نو په دیون کي بذل جاري کیدل پکار نه دی.حالانکه ستاسو په نیز دیون کي هم بذل جاري کیږي ؟

**الجواب**®ددي ځواب دادي.چه دیون کي د بذل صحیح کیدل دمدعی د ګمان په بناء دی.هم ددي صحیح کیدل د مدعی د ګمان په بناء دی.په دي طریقه چي دلته کي د بذل معنی منع پریښول ( او لري کول) دی.یعنی دلته د بذل مطلب دادي.چه مدعی علیه مال دین باندي قبضه کاوه نه منع کول پریخودی دی.اود قبضه ور کاوه اجازت ني ورکړي دي.اوس ګویا مدعی د خپل ګمان مطابق په دي مال باندي د خپل ذاتي حق په طور باندي قبضه کوی.او دده لپاره مال باندي قبضه کاوه نه هیڅ شئ مانع نه دي.او منع او بندول پریخودل، په مالونو کي جاري هم دی.ځکه چي د مالونو معامله آسانه ده.هم دا وجه ده.چه مالونو کي



اباحت جاري کیږي.

## غل ته قسم ورکول

| |
|---|
| **قَالَ** (**وَيُسْتَحْلَفُ السَّارِقُ**،اود غل ځخه به قسم اخستلي شي. **فَإِنْ نَكَلَ** نوکه ده د قسم نه انکار اوکړو. **ضَمِنَ** نو ضامن به وی. **وَلَمْ يُقْطَعْ**) او دده لاس به نشي کټ کولي. |

**تشریح:** امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکي فرمانیلي دی.که مسروق منه د سارق نه مال اخستل غواړي.اود لاس کټ کاوه اراده ني نه وی.نود غل ځخه به قسم اخستلي شي.او غل به په دي الفاظو سره قسم خوري.چه په خدائي قسم ددي مسروق منه په ما باندي مال نشته.نو که غل قسم اوخوړلو.نو په غل به نه مال واجب وی.اونه به قطع د ید واجب وی.اوکه ده د قسم نه انکار اوکړو.نو دي به د مال ضامن وی.خو دده لاس به نشي کټ کولي.

| |
|---|
| **لِأَنَّ الْمَنُوطَ بِفِعْلِهِ شَيْئَانِ: الضَّمَانُ** ځکه چي د غل فعل سره دوي (دوه) خبري متعلق دی.ضمان، **وَيَعْمَلُ فِيهِ النُّكُولُ**. **وَالْقَطْعُ** او په دي کي د قسم نه انکار ګټور دي.لاس کټ کول، **وَلَا يَثْبُتُ بِهِ** اودا په انکار د قسم سره نه ثابتیږي. |

**تشریح:** او وجه ددي داده.چه د غل غلا کاوه سره دوي (دوه) خبري متعلق دي.یعنی په انکار د قسم سره ضمان واجبیږي.ځکه به غل باندي ضمان واجب وی.او په انکار د قسم سره چونکه حد نه واجبیږي.او قطع د ید هم یو حد دي.په دي وجه به ددي غل لاس نشي کټ کولي.اودا داسي ده.کله چي د غل خلاف یو سړي او دوي (دوه) ښځي ګواهي ورکړي.نو په دي سره مال ثابتیږي.خو قطع د ید نه ثابتیږي.نوهم دغه ډول دلته کي هم مال ثابتیږي.او قطع د ید نه ثابتیږي.

| |
|---|
| **فَصَارَ كَمَا إِذَا شَهِدَ عَلَيْهَا رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ** نودا داسي شوه.چه کله د غل خلاف یو سړي او دوي (دوه) ښځو ګواهي ورکړي وی. |

**تشریح:** اودا داسي شوه.لکه چي یوسړي د غل اقرار اوکړو.او بیا ني ددي نه رجوع اوکړله.نو رجوع کاوه سره حد یعنی قطع د ید ساقطیږي.خو په اقرار سره چي کوم مال ثابت شوي وو. هغه به په رجوع کاوه سره نه ساقطیږي.

## د ښځي د طلاق قبل الدخول دعوی کول

| |
|---|
| **قَالَ** (**وَإِذَا ادَّعَتِ الْمَرْأَةُ طَلَاقًا قَبْلَ الدُّخُولِ** او کله چي ښځي د طلاق قبل الدخول دعوه اوکړله. **اُسْتُحْلِفَ الزَّوْجُ**،نو میړه ځخه به قسم اخستلي شي. **فَإِنْ نَكَلَ** نو که ده د قسم نه انکار اوکړو. **ضَمِنَ نِصْفَ الْمَهْرِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا**) نو دي به بالاتفاق د نصف مهرضامن وی. |

**تشریح:** صورت د مسئلي دادي.که ښځي د طلاق قبل الدخول دعوه اوکړله.یا ني د طلاق بعدالدخول دعوه اوکړله.بیا د میړه منکر کیدلو په وجه هغه نه قسم واخستلي شو.نوکه هغه قسم اوخوړلو.نو طلاق به نه واقع کیږي.اوکه هغه د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو ښځه به مطلقه شمارلي شي.اود طلاق قبل الدخول په صورت کي به میړه د نصف مهر ضامن وی.اود طلاق بعد الدخول په صورت کي به د پوره مهر ضامن وی.

| |
|---|
| **لِأَنَّ الْاِسْتِحْلَافَ يَجْرِي فِي الطَّلَاقِ عِنْدَهُمْ لَا سِيَّمَا إِذَا كَانَ الْمَقْصُودُ هُوَ الْمَالُ**،ځکه چي د امامانو په نیز طلاق کي قسم اخستل جاري کیږي.خاص طور باندي چي کله مال مقصود وی. |

**تشریح:** ددي دلیل دادي.چه د ټولو امامانو په نیز طلاق کي قسم اخستل جاري کیږي.خاص طور باندي چي کله مال مقصود وی.نو هرکله چي طلاق کي استحلاف جاري کیږي.نو میړه کوم چي مدعی علیه اود طلاق منکر دي.هغه ځخه به قسم هم اخستلي شي.او انکار کاوه باندي به د قاضي حکم هم مرتب کیږي.

وَكَذَا فِي النِّكَاحِ إِذَا ادَّعَتْ هِيَ الصَّدَاقَ دغه ډول په نكاح كي كله چې ښځه د مهر دعويداره وي. لِأَنَّ ذٰلِكَ دَعْوَى الْمَالِ، ځكه چې دا د مال دعوه ده. ثُمَّ يَثْبُتُ الْمَالُ بِنُكُولِهِ بيا د ميړه په انكار دقسم سره به مال (مهر) ثابتيږي. وَلَا يَثْبُتُ النِّكَاحُ، او نكاح به نه ثابتيږي.

تشريح: دغه ډول كه ښځي دعوه اوكړله.چه فلاني سړي زما ميړه دې.ماله دې هغه نه مهر واخستلې شی.يعنى د ښځي اصل مقصد مهر دې.نو په دې صورت كي به هم ميړه نه قسم اخستلې شی.ځكه چې دې سره مال اخستلو دعوه مقصود ده.او په مال كي استحلاف جارى كيږي.نو دلته كي به هم استحلاف جارى كيږي .يعنى ميړه څخه به قسم اخستلې شی.نو كه ميړه قسم اوخوړلو.چه زه ددې ميړه نه يم.او زما ددې سره نكاح نه ده شوې.او ما باندې ددې مهر واجب نه دې.نو په دې صورت كي به ميړه باندې هيڅ نه واجبيږي.خوكه هغه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نو ميړه باندې به د مهر مال واجب وي.خو نكاح به نه ثابتيږي.ځكه چې د قسم انكار سره مال ثابتيږي.خو نكاح نه ثابتيږي.

وَكَذَا فِي النَّسَبِ إِذَا ادَّعَى حَقًّا كَالْإِرْثِ وَالْحَجْرِ فِي اللَّقِيطِ، وَالنَّفَقَةِ وَامْتِنَاعِ الرُّجُوعِ فِي الْهِبَةِ، دغه ډول په نسب كي ، كله چې هغه د يو حق دعوه اوكړي.لكه دميراث، په غيره كي د لقيط د نفقي، او هبه كي د رجوع ممنوع كيدلو،

تشريح: دغه ډول به بالاتفاق نسب كي مدعى عليه نه قسم اخستلې شی.كله چې ده نسب سره دبل څه حق دعوه هم اوكړله.مثلاً د ميراث، په دې طريقه چې يوسړي مثلاً حامد په خالد باندې دعوه اوكړله.چه دا زما رور دې.او زموږ د دواړو د پلار انتقال اوشو.اود هغه واړه متروكه مال مدعى عليه يعنى د خالد په قبضه كي دې.نو ما ته دې زما د ميراث حق راكړې شی.مدعى عليه يعنى خالد ددې ټولو خبرو انكار اوكړو.او مدعى يعنى حامد بينه پيش نكړې شو.نو دلته به هم بالاجماع مدعى عليه نه قسم اخستلې شی.كه هغه قسم اوخوړلو.نوهغه به دمدعى يعنى د حامد دټولو حقوقو نه برى وي.اوكه هغه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نو مدعى يعنى حامد لپاره به د مال ميراث فيصله كولې شی.خود نسب فيصله به نشي كولې.يعنى دمدعى به مدعى عليه سره د ورورولۍ رشته نه ثابتيږي.يا مثلاً په غيره كي نې د لقيط دعوه اوكړله.په دې طريقه چې يو ماشوم چې ده ته دخپل ذات پيژندلو هم شعور نشته.په لاره كي پروت وو.يو سړي راوچت كړو.بيا يوې آزادې ښځي دعوه اوكړله.چه دا ماشوم زما رور دې.دده د پرورش حقداره زه يم.ملتقط ددې انكار اوكړو.بيا مدعيه ښځي كه بينه پيش نكړې شو.نو مدعى عليه څخه به بالاجماع قسم اخستلې شی.كه مدعى عليه قسم اوخوړلو.نو مدعيه ښځي ارخ ته به د ماشوم منتقل كولوحكم نشي كولې.اوكه هغه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نو مدعيه ښځي ارخ ته به د بچي منتقل كاوه حكم وركولې شی.خو نسب به نه ثابتيږي.يعنى د مدعيه ښځي به ددې ماشوم سره د ورورولۍ رشته نه ثابتيږي.

يا مثلاً د نفقه دعوه نې اوكړله.په دې طريقه چې يوشل دعوه اوكړله.چه فلانې يعنى شاهد زما رور دې. او توانګر دې.نو زما نفقه په ده باندې واجب ده.مدعى عليه يعنى شاهد د ورورولۍ انكار اوكړو.اوس كه مدعى بينه پيش نكړې شو.نود مدعى عليه يعنى شاهد څخه به بالاجماع قسم اخستلې شی.كه هغه قسم اوخوړلو.نود نفقي څخه به برى وي.اوكه د قسم خوړلو نه نې انكار اوكړو.نو دشل يعنى مدعى عليه لپاره به د نفقي فيصله كولې شی.خود نسب فيصله به نشي كولې.يعنى د ورورولۍ رشته به نه ثابتيږي.يا مثلاً د قرابت (او رشته دارۍ) په وجه نې هبه كي د رجوع ممتنع كيدلو دعوه اوكړله.په دې طريقه چې واهب په موهوب شي كي رجوع اوكړله.او موهوب له اووئيل.چه ته زما رور يې.او منشاء داده.چه تا ته د رجوع كاوه حق نشته.نوكه مدعى عليه يعنى واهب ددې انكار اوكړو.اومدعى يعنى موهوب له سره بينه نه وي.نو مدعى عليه (واهب) څخه به بالاجماع قسم اخستلې شی.نو كه هغه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نود رجوع في الهبه ممتنع كيدل به ثابتيږي.خو نسب يعنى د ورورولۍ رشته به نه ثابتيږي.

لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هٰذِهِ الْحُقُوقُ، ځكه چې مقصود دا حقوق دي.



تشريح: دې عبارت سره مرغينانى رحمه الله د ذكر شوو ټولو مسئلو دليل بيانوي.يعنى په ذكر شوو مسئلوكي نسب مقصود نه دې.بلكه ذكر شوى مالى حقوق مقصود دى.او په مالى حقوقو كي استحلاف جارى كيږي.نو په ذكر شوى مسئلوكي به هم استحلاف جارى كيږي.

وَإِنَّمَا يُسْتَحْلَفُ فِي النَّسَبِ الْمُجَرَّدِ عِنْدَهُمَا اود صاحبينو رحمهما الله خالى نسب كي به هغه وخت قسم اخستلې شی. إِذَا كَانَ يَثْبُتُ بِإِقْرَارِهِ كله چې هغه دده په اقرار سره ثابتيدلې شی.

تشريح: دحضرت امام صاحب رحمه الله په نيز خالى نسب كي استحلاف نه جارى كيږي.بلكه هغه نسب كي جارى كيږي.په كوم نسب كي چې د بل نه د حق دعوه هم كړې وي.لكه ځنګه چې پورته تفصيل سره تير شو.البته د صاحبينو رحمهما الله په نيز خالى نسب كي استحلاف جارى كيږي.يعنى صرف د نسب د دعوه په صورت كي مدعى عليه نه قسم اخستلې شی.خود صاحبينو رحمهما الله په نيز خالى نسب كي مدعى عليه نه قسم هغه وخت اخستلې شی.كله چې نسب صرف د مدعى عليه په اقرار سره ثابتيږي.ځكه وړاندې تيرشوى دى.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز د قسم نه انكار، اقرار دې.نو هرهغه نسب كوم چې د مدعى عليه په اقرار سره ثابتيدلې شی.هغه به د مدعى عليه په انكار عن اليمين سره هم ثابتيږي.مثلاً د سړي په حق كي د پلار او ځوى اقرار دې.لكه مثلاً خالد په شاهد باندې دعوه اوكړله.چه دا زما پلار دې.يا زما زوې دې.اود مال وغيره څه بل څه شي دعوه نې اونكړله.نو كه مدعى يعنى خالد بينه پيش نكړې شو.نو مدعى عليه يعنى شاهد څخه به قسم اخستلې شی.كه مدعى عليه قسم اوخوړلو.نو نسب به نه ثابتيږي.اوكه مدعى عليه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نو نسب به ثابتيږي.ځكه كه مدعى يعنى خالد د نسب دعوه كړې وه.او مدعى عليه يعنى شاهد ابتداء د نسب اقرار كړې وو.نو نسب به ثابتيدلو.نو چونكه دا نسب په اقرار سره ثابتيږي.په دې وجه انكار عن اليمين سره به هم ثابتيږي.ددې په خلاف كه خالد دعوه اوكړله .چه شاهد زما رور دې.نو مدعى عليه يعنى شاهد څخه به قسم نشي اخستلې.ځكه كه په دې صورت كي شاهد صريح اقرار كړې وې.چه خالد زما رور دې.نو نسب به نه ثابتيدلو.ځكه چې په دې كي غير باندې نسب لازميږي.ګويا خالد دا اووئيل.چه شاهد زما د پلار زوې دې.اودا جائز نه ده.

كَالْأَبِ وَالِابْنِ فِي حَقِّ الرَّجُلِ لكه د سړي په حق كي د پلار او ځوى اقرار. وَالْأَبِ فِي حَقِّ الْمَرْأَةِ، او د ښځي په حق كي د پلار دعوه، لِأَنَّ فِي دَعْوَاهَا الِابْنَ تَحْمِيلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ ځكه چې ددې د ابن په دعوه كي غير باندې نسب اچول لازميږي.

تشريح: مرغينانى رحمه الله فرمائي.چه دمولا او ميړه د ښځي او سړي دواړو په حق كي اقرار كول صحيح دى. ځكه چې دې كي غير باندې نسب اچول نه لازميږي.مثلاً ښځي د يوسړي په اړه كي اووئيل.چه دا زما ميړه دې.او مولا يا ميړه ددې منكر وي.او مدعيه ښځي سره بينه نه وي.نود مولا او ميړه څخه به قسم اخستلې شی.كه هغه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نو مولا او ميړه كيدل به ثابتيږي.لكه ځنګه چې د مولا او ميړه په اقرار سره مولا او ميړه كيدل ثابتيږي.

وَالْمَوْلَى وَالزَّوْجِ فِي حَقِّهِمَا اود مولا او ميړه اقرار د سړي او ښځي دواړو په حق كي صحيح دې.

تشريح: دغه ډول كه سړي اووئيل.چه دا زما مولا دې.يا دا ښځه زما بى بى (بيګم) ده.نوكه مدعى عليه اقراراوكړو.نومولا كيدل او ښځه كيدل به ثابت وي.دغه ډول كه مدعى عليه د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.نو بيا به هم مولا كيدل او ښځه كيدل ثابتيږي.

## د قصاص په دعوى كښې د قسم نه انكار كول

قَالَ (وَمَنِ ادَّعَى قِصَاصًا عَلَى غَيْرِهِ) كه يوسړي په بل باندې د قصاص دعوه اوكړله. (فَجَحَدَهُ) نو مدعى عليه

ددې انکار اوکړو. (اُسْتُحْلِفَ) بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به مدعى عليه نه قسم اخستلې شى. (ثُمَّ إِنْ نَكَلَ عَنِ الْيَمِينِ فِيمَا دُونَ النَّفْسِ) بيا كه مدعى عليه د نفس نه په کم کې د قسم انکار اوکړو. (يَلْزَمُهُ الْقِصَاصُ) نو په ده به قصاص لازم وى. (وَإِنْ نَكَلَ فِي النَّفْسِ حُبِسَ حَتَّى يَحْلِفَ أَوْ يُقِرَّ) او كه په قصاص د نفس کې نې قسم نه انکار اوکړو. نو مدعى عليه به قيد کې اچولې شى. تردې چې هغه قسم اوخورى. او اقرار اوکړى. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ(١) اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى. وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمائى. لَزِمَهُ الْأَرْشُ فِيهِمَا چې دواړو صورتونوکې به مدعى عليه باندې ديت لازم وى. لِأَنَّ النُّكُولَ إِقْرَارٌ ځکه د قسم نه انکار داسې اقرار دې. فِيهِ شُبْهَةٌ عِنْدَهُمَا چې دې کې د صاحبينو رحمهما الله په نيز شبه وى. فَلَا يَثْبُتُ بِهِ الْقِصَاصُ نو په انکار د قسم سره به قصاص نه ثابتيږى. وَيَجِبُ بِهِ الْمَالُ، او په دې سره به مال واجب وى. خُصُوصًا إِذَا كَانَ امْتِنَاعُ الْقِصَاصِ لِمَعْنًى مِنْ جِهَةِ مَنْ عَلَيْهِ، خصوصاً كله چې د قصاص ممتنع کيدل دداسې معنى په وجه وى. کومه چې ددې سړى د اړخه اوموندې شى. كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِالْخَطَإِ په چاچه قصاص لازم دې. لکه (مثلاً) قاتل د قتل خطاء اقرار اوکړو. وَالْوَلِيُّ يَدَّعِي الْعَمْدَ. او ولى د قتل عمد مدعى دې. وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ الْأَطْرَافَ يُسْلَكُ بِهَا مَسْلَكَ الْأَمْوَالِ چې اطرافوکې د مالونو پشان معامله کولې شى. فَيَجْرِي فِيهَا الْبَدَلُ نو په اطرافوکې به بذل جارى کيږى.

**مذهب ابى حنيفة رحمه الله** ﴿ د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كه يو سړى په بل باندې د قصاص دعوه اوکړله. مدعى عليه ددې انکار اوکړو. او مدعى بينه پيش نکړې شو. نو مدعى عليه ځخه به بالاجماع قسم اخستلې شى. دعوه د نفس د قصاص وى. اوكه د نفس نه د كم د قصاص وى. نو كه مدعى عليه قسم اوخوړلو. نو هغه به د قصاص نه برى کيږى. اوكه هغه د نفس نه په کم کې د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. نو په ده به قصاص لازم وى. په دې شرط چې ده قصداً جرم کړې وى. اوكه مدعى عليه په قصاص د نفس کې د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. نو مدعى عليه به په قيدخانه کې اچولې شى. تردې چې هغه قسم اوخورى. يا د قصاص نفس اقرار اوکړى.

**دليله** ﴿ د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه اطراف او اندامونوکې د مالونو پشان سلوک کولې شى. ځکه چې لکه ځنګه مالونه د نفسونو او ځانونو د ساتنه لپاره پيدا کړې شوى دى. دغه ډول اطراف او اندامونه هم د نفسونو د ساتنه لپاره پيدا کړې شوى دى. نو لکه ځنګه چې مالونو کې بذل جارى کيږى. دغه ډول به په اطراف او اندامونوکې هم بذل (بهادرئ سره ورکول) جارى کيږى. يعنى كه يوكس په بل سړى باندې د يواندام په قصد سره د کټ کاوه دعوه اوکړله. اود بينه نه کيدلو په وجه مدعى عليه نه د قسم مطالبه اوکړله. او مدعى عليه د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. نو مدعى عليه ځخه به ددې اندام قصاص اخستلې شى. ددې په خلاف كه عمداً (په قصد) د نفس تلف کاوه دعوه ئې اوکړله. نو په دې کې به د مالونو پشان سلوک (او معامله) نشى کولې. يعنى نفسونو کې به بذل نه جارى کيږى. كه يو کس بل سړى ته اووئيل. چه ته زما لاس کټ کړه. هغه ددې قاتل لاس کټ کړو. نو قاطع باندې به ضمان واجب نه وى. اودا د ضمان نه واجبيدل، اطراف او اندامونوکې د بذل اثر دې. اوكه يو کس بل سړى ته اووئيل. چه ته ما قتل کړه. هغه دا قاتل قتل کړو. نو قاتل باندې به د يو روايت مطابق قصاص واجب وى. او د يو روايت مطابق به ديت واجب وى. اود قصاص يا ديت واجبيدل ددې خبرې علامت دې. چه نفسونو کې بذل نه جارى کيږى.

**مذهب الصاحبين رحمهما الله** ﴿ ګنى صاحبين رحمهما الله فرمائى. چه په انکار د قسم سره په نفس او مادون النفس دواړو صورتونوکې مدعى عليه باندې ديت لازميږى. يعنى قصداً د قتل دعوه وى. نو بيا به هم د قسم په انکار

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في تنوير الأبصار(٤\٤٧٤) وملتقى الأبحر(٣\٣٥٣) والهندية (٤\١٦) نقلاً عن القول الراجح(٢\١٧١)



سره مدعى عليه باندې ديت لازم وى. اوكه د يو اندام په اړه کې دعوه وى. نو بيا به هم مدعى عليه باندې ديت لازم وى.

**دليلهما** ﴿ د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه د قسم نه انکار کول ددوى په نيز داسې اقرار دې. چې دې کې شبه وى. ځکه کيداې شى. چه مدعى عليه د دعوه په انکارکې رشتونې وى. خو تورعاً (احتياطاً) د قسم خوړلو نه انکار کوى. نود مدعى عليه د قسم نه انکار کول به د دعوه اقرار نه وى. بلکه دده د اړخه به بذل (د زړه په خوښئ مال ورکول) وى. بهرحال د قسم نه انکار داسې اقرار دې. چه دې کې شبه ده. او شبه سره قصاص نه ثابتيږى. نود مدعى عليه په دې انکار سره به قصاص نه ثابتيږى. البته د ديت مال به واجب وى. ځکه چې مال شبه سره هم ثابتيږى. خاص طور باندې كله چې د قصاص ممتنع کيدل داسې سبب سره وى. کوم سبب چې د من عليه القصاص يعنى د مدعى د اړخه موندلې شوې وى. مثلاً مدعى عليه يعنى قاتل د قتل خطاء اقرار اوکړو. او ولى د مقتول د قتل عمد دعوه اوکړله. نو په دې صورت کې ديت واجبيږى. قصاص نه واجبيږى. نو هم دغه ډول د مدعى عليه د قسم نه د انکار په صورت کې ده باندې ديت واجبيږى. او قصاص نه واجبيږى.

بِخِلَافِ الْأَنْفُسِ په خلاف د نفوس. فَإِنَّهُ لَوْ قَالَ ځکه كه هغه اووئيل. اقْطَعْ يَدِي چې زما لاس کټ کړه. فَقَطَعَهَا او ده دهغه لاس کټ کړو. لَا يَجِبُ الضَّمَانُ، نو ضمان به واجب نه وى. وَهٰذَا إِعْمَالٌ لِلْبَذْلِ إِلَّا أَنَّهُ لَا يُبَاحُ، اودا د بذل اثر دې. خودا چې مباح نه دې. لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ، وَهٰذَا الْبَذْلُ مُفِيدٌ اودا بذل مفيد دې. لِانْدِفَاعِ الْخُصُومَةِ بِهِ ځکه چې دې بذل سره خصومت لرې کيږى. فَصَارَ كَقَطْعِ الْيَدِ لِلْآكِلَةِ نو داسې شوه. لکه د آکله (جوړ او تيره) زخم په وجه د لاس کټ کول. وَقَلْعِ السِّنِّ لِلْوَجَعِ، يا د درد په وجه غاښ اوبنکل.

**تشريح:** په دې عبارت سره يو تقديرى سوال ته اشاره کوى چې هركله اطراف او اندامونو سره د مالونو پشان سلوک او معامله کولې شى. نود اندامونو قطع (کټ کول) مباح (جائز) کيدل پکار دى. يعنى كه يوكس بل سړى ته اووئيل. "چه زما مال واخله. او هغه مال واخستلو. نو مباح دى. دغه ډول كه ځوک اووائى. چه زما لاس کټ کړه. نو هغه لپاره لاس پرې کول مباح کيدل پکار دى. حالانکه د اطرافو او اندامونو پرې کول ستاسو په نيز مباح نه دى.

ځواب: ددې ځواب دادې. چه د اندامونو په پريکولوکې چونکه هيڅ فائده نشته په دې وجه د اندامونو پرې کول مباح او نه ګرځولى شو. لکه ځنګه چې د عدم فائدې په وجه مال تلف کول مباح نه دى. مثلاً كه يوكس اووئيل. چه زما مال په درياب کې اوغورزوه. يا ئې په اور کې اوسوزوه. نو دا مباح نه دى. اود قسم نه په انکار کاوه کې چې کوم بذل دى. هغه ګټور اوکار آمد دې. ځکه چې دې بذل سره خپل منځ کې خصومت لرې کيږى. نو ددې فائدې په لحاظ سره دا بذل مباح اوګرځولې شو. اومدعى عليه باندې اندامونوکې قصاص واجب کړې شو. او ددې مثال داسې دې. لکه چې سرجن (اپريشن والا ډاکټر) د تيره (او خوريدوکى) زخم په وجه لاس کټ کړو. يا ئې د درد په وجه غاښ اوښکلو. نودا مباح دى. دغه ډول د خصومت لرې کاوه لپاره مدعى عليه باندې اندامونوکې قصاص واجبيږى. او نفسونو کې چونکه بذل نه جارى کيږى. په دې وجه د مدعى عليه د انکار قسم يعنى د بذل کاوه باوجود به قصاص ممتنع وى.

وَإِذَا امْتَنَعَ الْقِصَاصُ فِي النَّفْسِ نو هركله چې نفس کې قصاص ممتنع شو. وَالْيَمِينُ حَقٌّ مُسْتَحَقٌّ او قسم مدعى عليه باندې يو واجبى حق دې. يُحْبَسُ بِهِ كَمَا فِي الْقَسَامَةِ نو ددې په وجه به دې په قيد کې اچولې شى. لکه ځنګه چې په قسامت کې کيږى.

**تشريح:** بهرحال مدعى عليه ځخه به د قسم د انکار په صورت کې قصاص نشى اخستلې. خودا خبره هم پخپل ځائې منلې شوې ده. چه مدعى عليه باندې قسم خوړل يو واجبى امر حق دې. نو ددې حق په وجه به مدعى عليه قيدخانه کې اچولې شى. او هغه وخته پورې به قيدخانه کې اچولې شى. ترکومه پورې چې دې

قسم اونه خوري. یاد مدعی د دعوه اقرار اونکړي. لکه څنګه چې په قسامت کې کیږي. د قسامت مثال دا دې چه یوه محله کې یو مقتول اوموندلې شو. اودا معلومه نشوه. چه دا چاقتل کړې دې. نود مقتول ولی به ددې محلې پنځوس سړي منتخب کړي. اود دوی څخه به قسم اخلی. چه، په خدائې قسم موږ دا نه دې قتل کړې. اونه موږ ته دده قاتل معلوم دې،، نو که دې خلګو د قسم نه انکار اوکړو. نو واړه به قیدخانه کې اچولې شي. تردې چې هغوی قسم اوخوري. او یا اقرار اوکړي. چه موږ قتل کړې دې. یا موږ ته قاتل معلوم دې. ځکه چې قسم دوی باندې یو واجبی حق دې. دغه ډول دلته کې کله چې مدعی د نفس د قصاص دعوه اوکړله. او مدعی علیه د قسم نه انکار اوکړو. نو دده په انکار سره اګرچه قصاص نه ثابتیږي. خود قسم نه انکار کول به هم جائز نه وي. په دې وجه به دې قیدخانه ( جیل) کې اچولې شي. چه دې قسم اوخوري. یا اقرار اوکړي.

## د مدعي ګواهانو حاضرولو پورې د مدعي علیه نه د کفیل اخستل

قَالَ (وَإِذَا قَالَ الْمُدَّعِي که مدعی اوونیل. لِي بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ قِيلَ، چې زما ګواهان په ښارکې موجود دی. لِلْخَصْمِ أَعْطِهِ كَفِيلًا بِنَفْسِكَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ) كَيْ لَا يَغِيبَ نَفْسُهُ نو دده مدعی علیه ته به وئیلې شي. چه ته د درې ورځو لپاره ده له د خپل ذات کفیل ورکړه. چه مدعی علیه پټ نشي. فَيَضِيعَ حَقُّهُ نود مدعی حق ضائع شي.

تشريح: مسئله داده. که مدعی د قاضی په مجلس کې اوونیل. چه زما ګواهان په ښار کې موجود دی. نو دده مدعی علیه ته به حکم ورکولې شي. چه درې ورځو لپاره د خپل ذات کفیل ورکړه. یعنی څوك سړې د مدعی علیه د حاضرولو ضامن کیدل پکار دی. وجه ددې داده. که مدعی علیه نه کفیل وانه خستلې شو. نو مدعی علیه پټیدلې شي. او د مدعی علیه د پټیدلو په صورت کې د مدعی حق ضائع کیدلې شي. نود مدعی حق ضائع کیدلونه د بچ کاوه لپاره مدعی علیه ته د کفیل ور کاوه حکم ورکړې شوې دې.

وَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ جَائِزَةٌ عِنْدَنَا او زموږ په نیز کفالہ بالنفس جائز ده. وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ، اودا وړاندې تیر شوی دی. وَأَخْذُ الْكَفِيلِ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوَى اسْتِحْسَانٌ عِنْدَنَا او صرف په دعوه باندې کفیل اخستل زموږ په نیز استحساناً جائز دی. لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلْمُدَّعِي ځکه چې دې کې مدعی لپاره خیرخواهی ده. وَلَيْسَ فِيهِ كَثِيرُ ضَرَرٍ بِالْمُدَّعَى عَلَيْهِ او په دې کې مدعی علیه لپاره زیات ضرر نشته.

تشريح: اوکفالہ بالنفس اګرچه د امام شافعی رحمه الله په نیز جائز نه ده. خو زموږ په نیز جائز ده. ددې تفصیل د،، کتاب الكفالة،، په اول کې تیر شوې دې.

مرغینانی رحمه الله فرمائی. که مدعی صرف دعوه اوکړله. او بینه ئې پیش نکړې شو. نو صرف د دعوه په بنا (بنیاد) باندې مدعی علیه نه کفیل اخستل جائز نه دی. هم دا د قتاده او امام شعبی رحمهما الله نه نقل دی. او استحسان دادې. چه مدعی علیه نه کفیل اخستل جائز دی. هم دا زموږ د عالمانو مذهب دې.

وجه القياس: د قیاس وجه داده. چه صرف دعوه د استحقاق سبب نه دې. یعنی صرف په دعوه سره مدعی علیه باندې د مدعی حق نه ثابتیږي. او صرف دعوه د استحقاق سبب څنګه کیدای شي. حالانکه د مدعی علیه انکار د مدعی د دعوه معارض دې. بهرحال هرکله چې صرف دعوه سره مدعی علیه باندې هیڅ حق نه ثابتیږي. نو مدعی علیه باندې به کفیل ورکول هم واجب نه وي.

وَهَذَا لِأَنَّ الْحُضُورَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ بِمُجَرَّدِ الدَّعْوَى اودا ځکه چې صرف دعوه سره مدعی علیه باندې حاضریدل واجب دی. حَتَّى يُعَدَّى عَلَيْهِ تردې چې د مدعی علیه په حاضرولو باندې حاکم نه کومك اخستلې شي. وَيُحَالُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَشْغَالِهِ اود مدعی علیه اودده په کارونو کې رکاوټ اچولې شي. فَصَحَّ التَّكْفِيلُ بِإِحْضَارِهِ نو دده په حاضرولو باندې کفیل اخستل جائز دی.

تشريح: وجه الاستحسان: او وجه د استحسان داده. چه مدعی علیه نه کفیل اخستلوکې مدعی باندې شفقت



دې په دې طریقه چې د کفیل ور کاوه نه روسته به مدعی علیه نشی تختیدلې. او هرکله چې مدعی علیه نشی تختیدلې. نو مدعی به دده خلاف بینه قائمولو باندې قادر وي. بهرحال په دې کې د مدعی فائده ده. اود مدعی علیه هیڅ نقصان نه دې. اود مدعی علیه نقصان ځکه نه دې. چه صرف دعوه باندې د مدعی علیه په ذمه حاضریدل واجب دی. تردې چې د مدعی علیه په حاضرولو باندې د حاکم نه کومك اخستلې شي. او مدعی علیه دده د کارونو نه منع کولې شي. نوهرکله چې صرف په دعوه کاوه د مدعی علیه حاضریدل ضروری دی. نو دده په حاضرولو باندې کفیل او ضامن اخستل به هم جائز وي.

په عبارت کې ،، یعدی ،، مضارع مجهول،، اعداء،، نه ماخوذ دې. ددې معنی کومك طلب کول دی. هم ددې نه د شاعر قول دې.

﴿ونستعدي الأمير إذا ظلمنا ومن يعدى إذ ظلم الأمير﴾

کله چې په موږ باندې څوك ظلم کوی. نو موږ د امیر ( حاکم) نه کومك غواړو. خو کله چې امیر ( پخپله) ظالم وي. نو دچا څخه به کومك طلب کولې شي. شعرکې اعداء او استعداء دواړه د کومك طلب کاوه په معنی کې مستعمل دی.

وَالتَّقْدِيرُ بِثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ، او درې ورځو سره اندازه کول د ابوحنیفه رحمه الله روایت دې. وَهُوَ الصَّحِيحُ، اوهم دا صحیح ده. وَلَا فَرْقَ فِي الظَّاهِرِ بَيْنَ الْخَامِلِ وَالْوَجِيهِ اود ظاهر الروایة مطابق د بې عزته او عزت مند سړي ، وَالْحَقِيرِ مِنَ الْمَالِ وَالْخَطِيرِ، اود معمولی مال او ډیرمال په منځ کې هیڅ توپیر نشته.

تشريح: مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه د کفیل اخستلو په سلسله کې د درې ورځو تحدید د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله روایت دې. او هم دا صحیح دې. ګنی امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چه د قاضی د دوهم مجلس منعقد کیدلو پورې به مدعی علیه نه کفیل اخستلې شي. مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه د ظاهرالروایة مطابق عزت مند او غیرعزت مند سړی په منځ کې هیڅ توپیر نشته. یعنی که مدعی علیه عزت مند وي. او که عزت مند نه وي. او د دعوه مال که معمولی وي. او که ډیر وي. په هرشان به مدعی علیه په کفیل ور کاوه مجبوره کولې شي. حضرت امام محمد رحمه الله فرمائی. که مدعی علیه عزت مند( او مرتبې والا) سړې وي. اوداسې مشهور وي. چه په ظاهره هغه خپل ځان نه پټوی. نو په داسې صورت کې مدعی علیه په کفیل ور کاوه نشی مجبوره کولې.

ثُمَّ لَا بُدَّ مِنْ قَوْلِهِ لِي بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ لِلتَّكْفِيلِ بیا د کفالت لپاره د مدعی قول ﴿لي بينة حاضرة﴾ وئیل ضروری دی. وَمَعْنَاهُ فِي الْمِصْرِ او ددې معنی ده چه،، په ښار کې دی ،، حَتَّى لَوْ قَالَ الْمُدَّعِي تردې که مدعی اوونیل. لَا بَيِّنَةَ لِي چې ما سره بینه نشته. أَوْ شُهُودِي غُيَّبٌ یا زما ګواهان غائب دی. لَا يُكَفَّلُ نو کفیل به نشی اخستلې. لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ. ځکه چې هیڅ فائده نشته.

تشريح: مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه کفاله لپاره د مدعی دا وئیل ضروری دی. چه زما ګواهان په ښار کې موجود دی. تردې که مدعی اوونیل. چه ما سره ګواهان نشته. یا زما ګواهان غائب دی. نو په دې صورت کې به مدعی علیه نه کفیل نشی اخستلې. ځکه چې په دې صورت کې کفیل اخستلوکې هیڅ فائده نشته. ځکه د کفاله فائده داده. چه د ګواهانو په عاجز کیدلو باندې کفیل مدعی علیه حاضر کړی. خو کله چې ګواهان موجود نه دی. نو مدعی علیه به څنګه حاضرولې شي.

قَالَ (فَإِنْ فَعَلَ وَإِلَّا أَمَرَ بِمُلَازَمَتِهِ) نو که مدعی علیه کفیل ورکړلو. خو ډیره ښه ده. ګنی نو مدعی ته به په ده پسې د لګیدلو حکم ورکولې شي. كَيْ لَا يَذْهَبَ حَقُّهُ چې دده حق ضائع نشي. (إِلَّا أَنْ يَكُونَ غَرِيبًا) خودا که مدعی علیه مسافر( بې وطنه) سړې وي. فَيُلَازِمُهُ مِقْدَارَ مَجْلِسِ الْقَاضِي) نو مدعی به د قاضی د مجلس په اندازه هغه پسې لګیدلې وي.

تشريح: ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. كه مدعى عليه د خپل اړخه كفيل وركړو نو ډيره ښه ده. ګني مدعى ته به حكم وركولې شي. چه هغه مدعى عليه پسې اولګي. او د هغه لمنه اونيسي. يعنې هروخت مدعى عليه سره لګيدلې وي. چه دده حق ضائع نشي.

**استثناء المسافر**⊙البته كه مدعى عليه په پردي وطن كې وي. يا مسافر وي. نو په دې صورت كې به د قاضي د مجلس ختميدلو پورې مدعى عليه پسې د لګيدلو اجازت وركولې شي. نو كله چې د عدالت نه د قاضي د پاسيدلو وخت راشي. اومدعى بينه پيش نكړې شو. نو قاضي به مدعى عليه نه قسم اخلي. او فيصله به صادر كوي. اود بينه د راتګ و انتظار به نه كوي.

وَكَذَا لَا يَكْفُلُ إِلَّا إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ،او دغه ډول ددې مسافر څخه به كفيل نشي اخستلې. خود قاضي د آخر د مجلس پورې. فَالِاسْتِثْنَاءُ مُنْصَرِفٌ إِلَيْهِمَا نو استثناء دواړو اړخ ته راجع ده. لِأَنَّ فِي أَخْذِ الْكَفِيلِ وَالْمُلَازَمَةِ زِيَادَةً عَلَى ذَلِكَ إِضْرَارًا بِهِ بِمَنْعِهِ عَنْ السَّفَرِ خكه چې ددې مقدار نه د زيات لپاره كفيل اخستل، او مدعى عليه پسې لګيدل، دا دې چه دې د سفر نه منع كوي. وَلَا ضَرَرَ فِي هَذَا الْمِقْدَارِ ظَاهِرًا،او په دې مقدار كې په ښكاره هيڅ ضرر نشته. وَكَيْفِيَّةُ الْمُلَازَمَةِ نَذْكُرُهَا فِي كِتَابِ الْحَجْرِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او ور سره يو شان لګيدلو حالت (او كيفيت) به موږ انشاءالله په،، كتاب الحجر،، كې ذكر كړو.

تشريح: مرغيناني رحمه الله فرمائي. كه دغه ډول د مسافر مدعى عليه نه كفيل واخستلې شو. نو صرف د قاضي دمجلس ختميدلو پورې به اخستلې شي. نو استثناء ﴿إلا أن يكون.... إلخ﴾ به كفيل اخستلو، او مدعى عليه سره لګيدلو دواړو اړخ ته راجع وي. خكه چې د قاضي د مجلس نه زيات وخت لپاره كفيل اخستل. يا مدعى عليه پسې د لګيدلو اجازت وركول د بې وطنه مسافر په حق كې داسې ضرر دې. چه دې د سفر نه منع كوي. اود قاضي د مجلس ختميدلو پورې د كفيل اخستلو يا ور سره لګيدلو كې په ښكاره داسې ضرر نه دې. او يوځانې ور سره د لګيدلو كيفيت به په،، كتاب الحجر،، كې ان شاءالله بيان كړو.

## فصل في كيفية اليمين والاستحلاف

ژباړه: (دا) فصل د قسم په كيفيت اود قسم اخستلو (په بيان كې) دې.

### د قسم اخستلو د طريقې بيان

قَالَ فرمائي. (وَالْيَمِينُ بِاَللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ دُونَ غَيْرِهِ) چې قسم خو د الله په نوم سره كيږي. دده نه د علاوه په نوم سره نه كيږي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خكه نبي كريم ﷺ فرمائيلې دي. {مَنْ كَانَ مِنْكُمْ حَالِفًا چې تاسو كې څوك قسم خوري. فَلْيَحْلِفْ بِاَللَّهِ نو هغه دې د الله په نوم باندې قسم اوخوري. أَوْ لِيَذَرْ}(¹) يا دې دا پريږدي. وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبي كريم ﷺ فرمائيلې دي. {مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللَّهِ چې چا د الله تعالى نه سوا د بل چا قسم اوخوړلو فَقَدْ أَشْرَكَ} نو هغه شرك اوكړو.

تشريح: مصنف رحمه الله چې كله د قسم او د قسم د موقعو نه فراغت بيامونډلو. نو اوس په دې فصل كې صفت او كيفيت ذكر كوي. لكه فرمائي. چه قسم د الله تعالى په نومونو كې په هر يو نوم سره كيږي. اود الله نه علاوه د بل چا په نوم سره قسم نه كيږي. خكه چې د بخاري او مسلم په يو حديث كې د الله رسول ﷺ فرمائيلې دي. كه په تاسو كې څوك سرې قسم اوخوري. نود الله قسم دې اوخوري. يا دې دا پريږدي. او په يو حديث كې د،، ليذر،، په ځانې ،، اوليصمت،، دې. يعنې يا دې خاموش شي. او د ترمذي په حديث كې دي. چه چا د الله نه سواء د بل چا په نوم سره قسم اوخوړلو. نو هغه شرك اوكړو. ددې دواړو حديثونو نه معلومه شوه. چه قسم

(¹) ... تخريجه في الأيمان



صرف د الله په نوم سره خوړلې شي. دده نه سوا د بل چا په نوم سره قسم خوړل صحيح نه دي. كه وې خوړلو نو بيا به هم قسم منعقد نه وي.

(وَقَدْ تُؤَكَّدُ بِذِكْرِ أَوْصَافِهِ) او كله قسم د الله د اوصافو ذكر كاوه سره مؤكد كولې شي. وَهُوَ التَّغْلِيظُ،او ذكر د اوصافو زيات سختوالى لپاره دې. وَذَلِكَ مِثْلُ قَوْلِهِ: قُلْ وَاَللَّهِ الَّذِي لَا إلَهَ إلَّا هُوَ لكه دده قول چې ته داسې اووايه چه،، دهغه ذات قسم چې دهغه نه سوا بل څوك معبود نشته. عَالِمُ الْغَيْبِ هغه حاضر غائب باندې خبر دې. وَالشَّهَادَةِ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ،هغه رحمن او رحيم دې. الَّذِي يَعْلَمُ مِنْ السِّرِّ مَا يَعْلَمُ مِنْ الْعَلَانِيَةِ،هغه پټ او باطن د علانيه او ښكاره پشان پيژني. مَا لِفُلَانٍ هَذَا عَلَيْك وَلَا قِبَلَك هَذَا الْمَالُ الَّذِي ادَّعَاهُ چې د فلانى سړي هيڅ حق په تا باندې يا ستا د اړخه د مال د كوم چې هغه دعوه كوي. وَهُوَ كَذَا وَكَذَا وَلَا شَيْءَ مِنْهُ. او هغه دومره دومره مال دې. نشته.

تشريح: ابو الحسين قدوري رحمه الله فرمائي. چه قسم د الله په او صافو ذكر كاوه سره مؤكد كولې هم شي. او په ذكر د اوصافو سره قسم مؤكد تغليظ كيږي. يعنې قسم زيات سختيږي. مثلاً قاضي دا الفاظ اوواني. ﴿والله الذى لا إله إلا هو عالم الغيب والشهادة هوالرحمن الرحيم الذى يعلم من السر والخفاء ما يعلم من العلانية ما لفلا هذا عليك ولا قبلك هذا المال الذى أدعاه وهو كذا وكذا ولا شي منه﴾ د هغه ذات قسم چې د هغه نه سوا بل هيڅ څوك معبود نشته. هغه په حاضر او غائب باندې خبردار دې. هغه رحمن او رحيم دې. چه هغه په پټ او باطن د علانيه او ښكاره پشان پوهيږي. د فلانى سړي په تا (يعنې ما) باندې يا ستا د اړخه (يعنې زما د طرفه) اصل مال كې د كوم چې مدعى دعوه كړې ده. او هغه دومره قدرې مال دې. نشته. او نه په دې كې څه دي.

وَلَهُ او ده ته اختيار دې. أَنْ يَزِيدَ فِي التَّغْلِيظِ عَلَى هَذَا چې په دې عبارت باندې زياتوى. تغليظ كوى. وَلَهُ أَنْ يَنْقُصَ مِنْهُ، إلَّا أَنَّهُ يَحْتَاطُ فِيهِ او ددې عبارت نه د كمولو هم اختيار دې. خو قاضي به ددې خبرې احتياط ساتي. كَيْ لَا يَتَكَرَّرَ عَلَيْهِ الْيَمِينُ، چې مدعى عليه باندې قسم مكرر نشي. لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ يَمِينٌ وَاحِدَةٌ، خكه چې مدعى عليه باندې صرف يو قسم واجب دې.

تشريح: مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د تغليظ په سلسله كې قاضي مذكوره الفاظو باندې زياتوالې هم كولې شي. او ددې نه كمولې هم شي. خكه چې قسم ور كاوه نه مقصود دادې. چه مدعى عليه د قسم نه انكار اوكړي. چه د مدعى حق ثابت شي. اود خلكو حالتونه مختلف دي. بعض خلګ داسې نيك او دينداره وي. چه هغوى صرف په لفظ د الله سره د قسم خوړلو زړه ورتيا نه كوي. نود داسې حضراتو په حق كې د قسم غليظ كاوه لپاره د لفظ الله نه علاوه د نورو اوصافو زياتولو هيڅ اړتيا نشته. او بعض خلګ معمولى درجې تغليظ سره د قسم خوړلو نه منع كيږي. او بعض داسې بد دين او بد اخلاقه قسم خلګ وي. چې هغوى د زيات تغليظ نه بغير نه منع كيږي. نو قاضي ته د خلكو د حالاتو په اعتبار سره د قسم په الفاظو كې د كمې زياتې اجازت شته.

**دليل التغليظ**⊙ ددې زياتوالى په سلسله كې د ابوهريره رضي الله عنه حديث اصل دې. نقل دي. چه يوسړي د نبي كريم ﷺ په وړاندې قسم اوخوړلو. او دا ئې اووئيل. ﴿والله الذى لا إله إلا هو الرحمن الرحيم الذى أنزل عليك الكتاب﴾ د هغه ذات قسم چې د هغه نه سوا هيڅ څوك معبود نشته. هم دا رحمن او رحيم دې. هغه په تا باندې كتاب نازل كړې دې. نبي كريم ﷺ دا واورېدل. او هيڅ نكير ئې اونه فرمائيلو. نو ددې نه معلومه شوه. چه د قسم په الفاظو كې تغليظ كاوه لپاره د زياتوالى اجازت دې. خود قسم الفاظ زياتولو په وخت به قاضي ډير احتياط كوى. يعنې د الله نومونه او صفتونه د واؤ نه بغير د ذكر كاوه هدايت به كوي. خكه كه مدعى عليه ﴿والله والرحمن والرحيم﴾ واؤ سره ذكر كړل. نو دا به درې قسمونه شي. حالانكه ده باندې واجب يو قسم دې.

وَالْقَاضِي بِالْخِيَارِ او قاضي ته اختيار دې. إنْ شَاءَ غَلَّظَ كه غواړي. تغليظ دې اوكړي. وَإِنْ شَاءَ لَمْ يُغَلِّظْ او كه

غواړي.تغليظ دې نه کوي. فَيَقُولُ اودا دې اووائي:.قُلْ بِاللّٰهِ أَوْ وَاللّٰهِ، چې ته اووايه.،بالله، يا والله،.وَقِيلَ:او ونيلې شوې دي.لَا يُغَلِّظُ عَلَى الْمَعْرُوفِ بِالصَّلَاحِ چې کوم سړې په صلاح او تقوى کې مشهور وي.هغه باندې به تغليظ نه کوي.وَيُغَلِّظُ عَلَى غَيْرِهِ،او دده نه علاوه باندې دې تغليظ اوکړي.وَقِيلَ:او ونيلې شوې دي.يُغَلِّظُ فِي الْخَطِيرِ مِنَ الْمَالِ دُونَ الْحَقِيرِ چې په زيات مال کې دې تغليظ اوکړي.او معمولي مال کې دې تغليظ نه کوي.

**تشريح:** قاضي ته اختيار دې.که غواړي.نو تغليظ دې اوکړي.اود قسم د الفاظو زياتولو هدايت دې اوکړي.اوکه غواړي.تغليظ دې نه کوي.او صرف په.،بالله يا والله.،.ونيلو باندې اکتفاء اوکړي.بعض حضرات وائي.که مدعى عليه صلاح او تقوى سره مشهور وي.نو هغه باندې به تغليظ نه کوي.او په نورو خلګ ودې تغليظ اوکړي.او بعض حضرات وائي.که د ډير مال دعوه وي.نو قسم کې دې تغليظ اوکړي.اوکه د معمولي مال دعوه وي.نو تغليظ دې نه کوي.

## د طلاق يا عتاق قسم اخستل

قَالَ (وَلَا يُسْتَحْلَفُ بِالطَّلَاقِ وَلَا بِالْعَتَاقِ) لِمَا رَوَيْنَا،او د طلاق او عتاق قسم به نشي اخستلې.د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړې دې.وَقِيلَ او ونيلې شوې دي.فِي زَمَانِنَا إِذَا أَلَحَّ الْخَصْمُ چې زموږ په زمانه کې که مدعى عليه زياته مبالغه اوکړله.سَاغَ لِلْقَاضِي أَنْ يُحَلِّفَ بِذَلِكَ نو قاضي لپاره جائز دي.چه هغه ددې قسم واخلي.لِقِلَّةِ الْمُبَالَاةِ بِالْيَمِينِ بِاللّٰهِ ځکه چې د الله تعالى د قسم پرواه کمه ده.وَكَثْرَةِ الِامْتِنَاعِ بِسَبَبِ الْحَلِفِ بِالطَّلَاقِ اود حلف بالطلاق نه زيات منع کيږي.

**تشريح:** مسئله: مدعى عليه څخه به د طلاق يا عتاق قسم نشي اخستلې.يعني مدعى عليه به دا نه وائي.که د مدعى عليه دعوه صحيح وي.نو زما ښځه دې طلاقه وي.يا زما غلام دې آزاد وي.دليل هغه حديث دې.کوم چې په پيل د فصل کې تير شوې دې.يعني «من كان حالفاً فليحلف بالله او ليذر» بعض مشائخ فرمايي .که مدعى عليه جګړالو ښکاره کيږي.نو قاضي هغه نه د عتاق يا طلاق قسم اخستلې شي.ځکه چې دې کې اکثر خلګ د فسق په وجه د الله نه کم يريږي.او طلاق وغيره غورځولو سره يريږي.نود دروغ قسم خوړلو نه منع کيږي.نو کله چې قاضي محسوس کړي.چه مدعى عليه جګړالو يا بې پرواه سړې دې.نو دده د طلاق يا عتاق قسم اخستلې شي.دا دې واضحه وي.چه دا قسم اګرچه ګټور دې.خود حديث د نص «من كان حالفاً فليحلف بالله او ليذر» نه مخالف دې.

## د يهودي او نصراني نه د قسم اخستلو طريقه

قَالَ فرماني. (وَيُسْتَحْلَفُ الْيَهُودِيُّ بِاللّٰهِ الَّذِي أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ، چې يهودي څخه به قسم اخستلې شي.چه په هغه الله قسم چاچه موسى ؑ باندې تورات نازل کړې دې.وَالنَّصْرَانِيُّ بِاللّٰهِ الَّذِي أَنْزَلَ الْإِنْجِيلَ عَلَى عِيسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ) اود نصراني نه چې په هغه الله قسم چاچه عيسى ؑ باندې انجيل نازل کړې دې.

**تشريح:** شيخ ابوالحسن قدوري (رحمه الله) فرماني.چه قاضي به يهودي باندې قسم داسې خوري. «بالله الذى انزل التوراة على موسى» په هغه خدائې قسم چاچه موسى ؑ باندې تورات نازل کړې دې.او نصراني به داسې قسم خوري. «بالله الذى انزل الانجيل على عيسى» په هغه الله قسم چاچه عيسى ؑ باندې انجيل نازل کړې دې.

{لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِابْنِ صُورِيَا الْأَعْوَرِ ځکه چې نبي کريم ﷺ ابن صور يا اعور ته اوفرمائيل.أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ الَّذِي أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلَى مُوسَى زه تا ته د هغه الله قسم درکوم.چاچه موسى ؑ باندې تورات نازل کړې دې.أَنَّ حُكْمَ الزِّنَا فِي كِتَابِكُمْ هَذَا} چې دزنا حکم ستاسو په کتاب کې هم دادې.

**تشريح:** دليل دادې.چه يو خل نبي کريم ﷺ د هغه يهودي په خواکې تير شو.چه دهغه مخ د زنا په سزاکې توره [illegible]وي وه.نبي کريم ﷺ يهودي راوغوښتلو او پوښتنه ئې ترې اوکړو.چه آيا ستاسو کتاب کې د زنا هم دا سزا



ده.تولو اوونيل.او.ددې نه روسته نبي کريم ﷺ د يهوديانو يو عالم عبدالله بن صوريا راوغوښتلو.او وې ونيل.چه ستا دې په هغه خدائې قسم وي.چاچه موسى ؑ باندې تورات نازل کړې دې.چه آيا ستاسو په کتاب کې حد د زنا هم دا دې.ابن صوريا اوونيل.نا.بلکه زموږ په کتاب کې حد زنا رجم دې.او ګوره اې محمدا که تاسو په ما قسم نه وو خوړلې.نو ما به هم تاته خبر نه وو درکړې.ابن صوريا اوونيل.چه اصل واقعه داده.چه کله موږ شريفانو او غيرشريفانو په منځ کې ويش اوکړو.چه که يو شريف سړي ددې جرم ارتکاب اوکړو.نود هغه به صرف مخ توروولې شي.اوکه يو غير شريف دا حرکت اوکړو.نو هغه ته به کوړې ورکولې شي.اورجم موږ بالکل پريښولو .حالانکه تورات کې د رجم حکم دې.نبي کريم ﷺ چې پوره واقعه واوريدله.نوددې زناکاردرجم حکم ئې اوفرمائيلو.او په معصومانه او عاشقانه انداز کې ئې داسې اوفرمائيل «اللهم انى اول من احيا امرك اذا ماتوه» اې الله زه ړومبې سړې يم.چه ستا حکم مې ژوندې کړو.حالانکه يهوديانو دا دفن کړې وو.ددې واقعې نه هم معلومه شوه.چه د يهود او نصارى څخه به په ذکر شوي الفاظو سره قسم اخستلې شي.

وَلِأَنَّ الْيَهُودِيَّ يَعْتَقِدُ نُبُوَّةَ مُوسَى اوځکه چې يهودي د موسى ؑ د نبوت معتقد (او منونکې) دې.وَالنَّصْرَانِيَّ نُبُوَّةَ عِيسَى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ او نصراني د عيسى ؑ په نبوت باندې اعتقاد لري.فَيُغَلِّظُ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِذِكْرِ الْمُنَزَّلِ عَلَى نَبِيِّهِ نو قاضي به دوی کې هر يو باندې ددې کتاب ذکر کوي.او تغليظ به کوي.کوم چې دده په نبي باندې نازل شوې دې.

**تشريح:** دوهم عقلي دليل دا دې يهوديانو د حضرت موسى ؑ په نبوت باندې اعتقاد ساتي.او نصارى د حضرت عيسى ؑ په نبوت باندې اعتقاد لري.نود دروغ قسم نه د پرهيز کاوه لپاره به قاضي په دوی کې هر يو ته هغه کتاب ذکرکوي.او تغليظ به کوي.کوم کتاب چې ددوی په نبي نازل شوې دې.

## د مجوسي نه د قسم اخستلو طريقه

وَيُسْتَحْلَفُ (الْمَجُوسِيُّ بِاللّٰهِ الَّذِي خَلَقَ النَّارَ) او مجوسي څخه به (داسې) قسم اخستلې شي.چه.،د هغه خدائې قسم چاچه اُور پيدا کړې دې.،وَهَكَذَا ذَكَرَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي الْأَصْلِ (¹).هم دغه ډول امام محمد (رحمه الله) په مبسوط کې ذکرکړې دي.يُرْوَى عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي النَّوَادِرِ اود ابوحنيفه (رحمه الله) نه نقل دي.أَنَّهُ لَا يُسْتَحْلَفُ أَحَدٌ إِلَّا بِاللّٰهِ خَالِصًا. چې قاضي به د هيڅ چا نه قسم نه اخلي.خو صرف د الله (په نوم).

**تشريح:** ابو الحسين قدوري (رحمه الله) فرمائي.چه قاضي به مجوسي (آتش پرست: چې د اورعبادت کوي) نه په دې الفاظو سره قسم اخلي. «بالله الذى خلق النار» د هغه خدائې قسم چاچا اُور پيدا کړې دې.هم دغه ډول امام محمد (رحمه الله) په مبسوط کې ذکر کړې دي.او وجه ددې داده.چه مجوسي د اور د عزت او عظمت اعتقاد لري.نو هغه به هم د دروغو قسم نه ځان ساتي.اود قسم مقصود به حاصليږي.

[¹] د حضرت امام ابوحنيفه (رحمه الله) نه نقل دي.چه قاضي به صرف د الله په نوم سره قسم اخلي.مدعي که مسلمان وي.که يهودي وي.اوکه نصراني يا مجوسي وي.ځکه چې د الله تعالى نه د علاوه نوم سره د قسم خوړلو اجازت ور کاوه کې د الله سره په تعظيم کې غيرالله شريکول لازميږي.چه دا په هيڅ شان مناسب نه ده.

وَذَكَرَ الْخَصَّافُ رَحِمَهُ اللّٰهُ او خصاف ذکر کړې دي.أَنَّهُ لَا يُسْتَحْلَفُ غَيْرُ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ إِلَّا بِاللّٰهِ، چې د يهودي او نصراني نه بغير(د نورو خلګ ونه) به د الله (د نوم) نه سوا قسم نه اخلي.وَهُوَ اخْتِيَارُ بَعْضِ مَشَايِخِنَا اوهم دا زموږ د بعض مشائخو خوښ فرمان دې.لِأَنَّ فِي ذِكْرِ النَّارِ مَعَ اسْمِ اللّٰهِ تَعَالَى تَعْظِيمًا ځکه چې د الله نوم سره اُور ذکر کاوه کې د

---

(¹) القول الراجح هو قول محمد (رحمه الله) كذا فى مجمع الأنهر(۳\۳۵۶) وتنوير الأبصار(۴\۴۷۶) وبدائع الصنائع (۶\۲۲۸) وكنز(۲۷۸) نقلاً عن القول الراجح(۲\۱۷۲)

اور تعظیم دي. وَمَا يَنْبَغِي أَنْ تُعَظَّمَ، او د اور تعظیم کول مناسب نه دی. بِخِلَافِ الْكِتَابَيْنِ په خلاف د دواړو کتابونو، لِأَنَّ كُتُبَ اللَّهِ مُعَظَّمَةٌ ځکه چې د الله تعالی واړه کتابونه معظم دی.

**تشریح:** امام خصاف رحمه الله ذکر کړي دي. چه یهودیان او نصاری د الله نه علاوه د خپل مذهب مطابق نور اوصاف ذکر کولې شي. خو ددوی نه علاوه (د نورو خلګو) ځخه به د الله په نوم قسم اخستلې شی. دا زموږ بعض مشائخو خوښ کړې دي.

**دلیله**: د الله نوم سره اور ذکر کړې شو. نو د اور به هم تعظیم وی. حالانکه د اور تعظیم په هیڅ شان مناسب نه دې. ددې په خلاف تورات او انجیل دی. چه د الله تعالی تولو کتابونه معظم دی. نو د الله نوم سره ددې په ذکر کاوه کې که ددې تعظیم کیږي. نو په دې کې هیڅ باك نشته.

### د بت پرست نه د قسم اخستلو طریقه

(وَالْوَثَنِيُّ لَا يُحَلَّفُ إِلَّا بِاللَّهِ) او د بت پرست ځخه به د الله د نوم نه سوا د هیڅ چا قسم نشی اخستلې. لِأَنَّ الْكَفَرَةَ بِأَسْرِهِمْ يَعْتَقِدُونَ اللَّهَ تَعَالَى، ځکه چې کافران واړه په تولو د الله اعتقاد لری. قَالَ اللَّهُ تَعَالَى الله تعالی فرمانیلی دی. {وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ که ته ددې بت پرستو نه پوښتنه اوکړې. مَنْ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ چې چا آسمانونه او مځکه پیدا کړې دی. لَيَقُولُنَّ اللَّهُ} نو هغوی به ضرور وائی. چه الله (پیدا کړی دی).

**تشریح:** په متن کې څه مشکل نشته

### د دوی عبادت خانو کښې به قسم نشي اخستلې

قَالَ (وَلَا يُحَلَّفُونَ فِي بُيُوتِ عِبَادَتِهِمْ) او ددوی ځخه به ددوی په عبادت خانوکې قسم نشی اخستلې. لِأَنَّ الْقَاضِيَ لَا يَحْضُرُهَا ځکه چې قاضی به هلته کې نه حاضریږی. بَلْ هُوَ مَمْنُوعٌ عَنْ ذَلِكَ بلکه قاضی هلته کې د تللو نه منع کړې شوې دي.

**تشریح:** په متن کې څه مشکل نشته

### په زمان او مکان سره د تغلیظ حکم

قَالَ (وَلَا يَجِبُ تَغْلِيظُ الْيَمِينِ عَلَى الْمُسْلِمِ بِزَمَانٍ وَلَا مَكَانٍ) او مسلمان باندې د قسم تغلیظ په زمان او مکان سره واجب نه دي.

**تشریح:** ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائی. چه د مسلمان قسم غلیظ کاوه لپاره د کوم یو متبرك زمان یا مکان ذکر کول واجب نه دی. یعنی دا ضروری نه ده. چه په یو متبرك زمان یا مکان کې قسم واخستلې شي.

لِأَنَّ الْمَقْصُودَ تَعْظِيمُ الْمُقْسَمِ بِهِ ځکه چې مقصود د هغه تعظیم دي. د چا چې قسم خوړلې کیږی. وَهُوَ حَاصِلٌ بِدُونِ ذَلِكَ، او هغه بغیر ددې نه هم حاصلیږی. وَفِي إِيجَابِ ذَلِكَ حَرَجٌ عَلَى الْقَاضِي او ددې په واجبولوکې قاضی باندې حرج دي. حَيْثُ يُكَلَّفُ حُضُورَهَا ځکه چې هغه به هلته کې د حاضریدلو مکلف کولې شی. وَهُوَ مَدْفُوعٌ . حالانکه حرج لرې کړې شوې دي.

**تشریح:** ځکه چې قسم سره د هغه معبود تعظیم مقصود دې. د چا د نوم چې قسم خوړلې شی. او دا تعظیم ددې زمان او مکان ذکر کاوه نه بغیر هم حاصلیږی. او د زمان یا مکان متعین کولوکې قاضی په حرج کې اخته کول لازمیږی. ځکه چې د زمان او مکان د تعین په صورت کې به قاضی باندې هلته کې حاضریدل لازمیږی. حالانکه شریعت اسلام حرج لرې کړې دې. نو دا خبره واجب نه ده. بلکه قاضی اختیار مند دې. کیوم خائې چې غواړی. قسم دې واخلی.

### مدعی علیه باندې د اخستلو دعوی او دده نه د قسم اخستلو طریقه



قَالَ فرمائی. (وَمَنِ ادَّعَى که یو کس دعوه اوکړله. أَنَّهُ ابْتَاعَ مِنْ هَذَا عَبْدَهُ بِأَلْفٍ چې ده د هغه نه د هغه غلام د زر (درهمو) په عوض اخستې دي. فَجَحَدَ نو مدعی علیه ددې انکار اوکړو. اسْتُحْلِفَ بِاللَّهِ مَا بَيْنَكُمَا بَيْعٌ قَائِمٌ فِيهِ نو هغه ځخه به قسم اخستلې شی. چه،، په خدائې قسم زما او دده په منځ کې په غلام کې بیع نه ده قائم شوې،، (وَلَا يُسْتَحْلَفُ بِاللَّهِ مَا بِعْتُ) او دا قسم به نشی اخستلې. چه،، په خدائې قسم ما نه دې خرڅ کړې،، لِأَنَّهُ قَدْ يُبَاعُ الْعَيْنُ ځکه چې کله عین خرڅولې شی. ثُمَّ يُقَالُ فِيهِ بیا په دې کې اقاله کولې شی.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې. که یوسړی په بل کس باندې دعوه اوکړله. چه ما دده نه دده غلام د زر (درهمو) په عوض اخستې دي. او مدعی علیه ددې انکار اوکړو. نو که مدعی سره بینه موجود نه وی. نو مدعی علیه (بائع) ځخه به په دې طریقه قسم اخستلې شی. چه،، په خدائې قسم زما او دده په منځ کې په دې غلام کې بیع موجود نه ده،، او داسې قسم به نشی اخستلې. چه په خدائې قسم مادا غلام نه دې خرڅ کړې. یعنی په حاصل مراد به قسم اخستلې شی. او په سبب به قسم نشی اخستلې.

دلیل دادې. چه کله یو معین مال خرڅولې شی. او بیا په دې کې اقاله کولې شی. د اقاله نه روسته بیع پخپل حال باندې پاته نه پاتې کیږی. نو که مدعی علیه نه سبب یعنی بیع باندې قسم واخستلې شو. نو په دې سره به مدعی علیه ته نقصان رسیږی. نو دده نه د ضرر لرې کاوه لپاره به حاصل مراد باندې قسم اخستلې شی.

(وَيُسْتَحْلَفُ فِي الْغَصْبِ بِاللَّهِ مَا يَسْتَحِقُّ عَلَيْكَ رَدَّهُ او په غصب کې به قسم اخستلې شی. چه،، په خدائې قسم تا باندې د مغصوب واپسی مستحق نه ده،، وَلَا يُحَلَّفُ بِاللَّهِ مَا غَصَبْتُ) او قاضی به داسې قسم نه اخلی. چه ما غصب کړې نه دې. لِأَنَّهُ قَدْ يَغْصِبُ ځکه چې سړې کله غصب کوی. ثُمَّ يَفْسَخُ بِالْهِبَةِ وَالْبَيْعِ بیا دهبه یا د بیع په ذریعه فسخ کوی.

**تشریح:** اوکه یو کس په بل سړی باندې د غصب دعوه اوکړله. او مدعی سره بینه نه وی. نو مدعی علیه ځخه به په دې الفاظو سره قسم اخستلې شی. چه په خدائې قسم دا مدعی ما باندې د مغصوب شئ واپس کاوه استحقاق نه لری. او په دې الفاظو سره به قسم نشی اخستلې. چه په خدائې قسم ما نه دې غصب کړې. ځکه چې کله سړې غصب کوی. خو مال غاصب ته عین مغصوب هبه کوی. یا ئې د غاصب په لاس خرڅوی. یا کله غاصب تاوان ور کاوه سره د مغصوب شئ مالك کیږی. نوکه مدعی علیه (غاصب) نه دا قسم واخستلې شو. چه ما نه دې غصب کړې. نو په دې صورت کې به د مدعی علیه ضرر وی. نو ددې ضرر لرې کاوه لپاره به داسې قسم اخستلې شی. چه مدعی ما باندې د غصب مال واپسئ حق نه لری. ځکه که غصب موجود شو. نو د هغې واپس کول به ضروری وی.

(وَفِي النِّكَاحِ بِاللَّهِ مَا بَيْنَكُمَا نِكَاحٌ قَائِمٌ فِي الْحَالِ) او په نکاح کې به (داسې قسم خوری چه)،، په خدائې قسم ستاسو دواړو په منځ کې فی الحال نکاح قائم نه ده،، لِأَنَّهُ قَدْ يَطْرَأُ عَلَيْهِ الْخُلْعُ ځکه چې کله په نکاح باندې خلع راځی.

**تشریح:** اوکه یو کس په یوې ښځې باندې د نکاح دعوه اوکړله. او ښځې انکار اوکړو. یا ددې برعکس اوشو. او مدعی بینه پیش نکړې شو. نو مدعی علیه ځخه به په دې الفاظو سره قسم اخستلې شی. چه په خدائې قسم زموږ دواړو په منځ کې فی الحال نکاح قائم نه ده. او دا قسم به نه اخلی. چه په خدائې قسم ما ددې (یا دده) سره نکاح نه ده کړې. ځکه چې کله د نکاح نه روسته خلع کیږی. او د خلع نه روسته نکاح پاته نه پاتې کیږی. نو په دې قسم اخستلوکې (چې په خدائې ما نکاح نه ده کړې) د مدعی علیه ضرر دې. نو ددې ضرر لرې کاوه لپاره به په دې الفاظو قسم نشی اخستلې.

(وَفِي دَعْوَى الطَّلَاقِ بِاللَّهِ مَا هِيَ بَائِنٌ مِنْكَ السَّاعَةَ بِمَا ذَكَرَتْ او د طلاق په دعوه کې (به داسې قسم خوری چه)،،

په خدائې قسم دا ښځه تا باندې په دې وخت بائنه نه ده.د هغه امر په وجه كوم چې دې ښځې ذكر كړې دې،، (ولا يحلف بالله ما طلقها) اوداسې قسم به نشي اخستلې.چه په خدائې قسم ده دې ته طلاق نه دې وركړې. لأن النكاح قد يجدد بعد الإبانة خكه چې كله د بائنه كيدلو نه روسته د نكاح تجديد كولې شي. فيحلف على الحاصل في هذه الوجوه نو په دې ټولو صورتونو كې به په حاصل مراد باندې قسم اخستلې شي. لأنه لو حلف على السبب خكه كه په سبب باندې قسم واخستلې شي. يتضرر المدعى عليه نو مدعى عليه ته به ضرر رسيږي. وهذا قول أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله([1]) اودا د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله قول دې.

**تشريح:** اوكه ښځې سړې باندې د طلاق دعوه اوكړله.او سړې ددې انكار اوكړو.او مدعى سره بينه نه وي.نو مدعى عليه (خاوند) څخه به په دې الفاظو سره قسم اخستلې شي.چه په خدائې قسم دا ښځه په ما باندې دې وخت په دې وجه بائنه نه ده.دكوم چې دا دعوه كوي.اودا قسم به نشي اخستلې.چه په خدائې قسم ما دې ته طلاق نه دې وركړې.خكه چې د بائنه كاوه نه روسته كله د نكاح تجديد كولې شي.اوس كه دده نه داسې قسم واخستلې شي.چه په خدائې قسم ما دې ته طلاق نه دې وركړې.نو په دې صورت كې به مدعى عليه ته ضرر رسيږي.نو ددې نه د ضرر لرې كاوه لپاره به په دې الفاظو سره قسم نشي اخستلې.بلكه دا به وائي.چه په خدائې قسم دا ښځه ما باندې دې وخت بائنه نه ده.

**هذا قول الطرفين رحمهما الله** ذكرشوى ټولو صورتونو كې به حاصل معنى باندې قسم اخستلې شي.او په سبب (بيع، غصب، نكاح، طلاق) باندې به قسم نشي اخستلې.او وجه ددې داده.كه په سبب باندې قسم واخستلې شو.نو مدعى عليه ته به ضرر رسيږي.نود مدعى عليه نه د ضرر لرې كاوه لپاره به حاصل معنى باندې قسم اخستلې شي. مرغينانى رحمه الله فرمائي.چه حاصل معنى باندې قسم اخستل د حضرت امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله مذهب دې.

أما على قول أبي يوسف رحمه الله يحلف في جميع ذلك على السبب إلا إذا عرض بما ذكرناه او بهرحال د ابويوسف رحمه الله په قول باندې به په دې ټولو صورتونو كې په ټولو باندې قسم اخستلې شي.خو كله چې مدعى عليه په دې امورو سره تعريض اوكړي.كوم چې مونږ ذكر كړى دى. فحينئذ يحلف على الحاصل.نو دغه وخت به حاصل مراد باندې قسم اخستلې شي. وقيل:او وئيلې شوى دى. ينظر إلى إنكار المدعى عليه إن أنكر السبب چې د مدعى عليه انكار ته به كتلې شي.كه هغه د سبب انكار اوكړو. يحلف عليه نو سبب باندې به قسم اخستلې شي. وإن أنكر الحكم اوكه د حكم انكار ئې اوكړو. يحلف على الحاصل.نو په حاصل معنى باندې به قسم اخستلې شي.

**تشريح:** اود امام ابويوسف رحمه الله مذهب دادې.چه په ذكرشوى ټولو صورتونوكې به سبب باندې قسم اخستلې شي.خو كله چې مدعى عليه ذكر شوى څيزونو سره تعريض اوكړي.مثلاً داسې اووايې:چه كله بيع كاوه نه روسته اقاله كولې شي.نو داسې حالت كې به حاصل معنى باندې قسم اخستلې شي.بعض حضرات فرمائي.چه د مدعى عليه انكار ته به كتلې شي.كه هغه د سبب انكار اوكړو.نو هغه څخه به سبب باندې قسم اخستلې شي.اوكه هغه د حكم انكار اوكړو.نو حاصل معنى باندې به قسم اخستلې شي.

فالحاصل هو الأصل عندهما نو طرفينو رحمهما الله په نيز اصل هم دادې.چه حاصل معنى باندې قسم واخستلې شي. إذا كان سببا يرتفع په دې شرط چې سبب په يو لرې كونكى سره لرې كيداې شي. إلا إذا كان فيه ترك النظر في جانب المدعي خو كله چې په دې كې د مدعى په اړخ كې رعايت پرينښول وي. فحينئذ يحلف على السبب بالإجماع، نو دغه وخت به بالاجماع سبب باندې قسم اخستلې شي.

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى العناية (۱۸۶\۷) والهندية(۱۸\٤) وشرح المجلة (٤۲۱\٥) المادة (۱۷٤) نقلاً عن القول الراجح(۱۷۳\۲)



**تشريح:** مرغينانى رحمه الله فرمائي.چه د طرفينو رحمهما الله په نيز اصل دادې.چه حاصل معنى باندې قسم واخستلې شي.په دې شرط چې سبب داسې وي.چه په څه لرې كونكى سره لرې كولې شي.مثلاً بيع په اقاله سره لرې كيږي.غصب په هبه او بيع سره فسخ كيږي.نكاح، خلع سره فسخ كيږي.او طلاق د نكاح د تجديد نه روسته لرې كيږي.بهرحال كه سبب داسې وي.كوم چې لرې كاوه سره لرې كيداې شي.نو په دې صورت كې د طرفينو رحمهما الله په نيز حاصل معنى باندې قسم اخستلې شي.البته كه په حاصل معنى باندې قسم اخستلوكې د مدعى رعايت نه ساتلې كيږي.نو دغه وخت به بالاجماع سبب باندې قسم اخستلې شي.

وذلك أن تدعي مبتوتة نفقة العدة او دا داسې ده.لكه مثلاً يوه مطلقه ثلاثه د عدت د نفقې دعوه اوكړي. والزوج ممن لا يراها،او ميړه د هغه خلګو څخه دې.كوم چې ددې اعتقاد نه لري. أو ادعى شفعة بالجوار يا ئې د ګاونډ د شفعه دعوه اوكړله. والمشتري لا يراها،او مشترى ددې اعتقاد نه لري. لأنه لو حلف على الحاصل خكه كه هغه په حاصل معنى باندې قسم اوخوړلو. يصدق في يمينه في معتقده نو هغه به د خپل اعتقاد موافق خپل يمين كې رشتونې وي. فيفوت النظر في حق المدعي،نود مدعى په حق كې رعايت فوت شو.

**تشريح:** په دې متن كې هغه صورت مثال بيانوى چې په كوم صورت كې په حاصل معنى باندې د مدعى خيال نشي ساتلې نو په سبب باندې قسم اخستلې شي مثل سراج ښځه ده.چه هغې ته خپل ميړه درې طلاقه وركړې دى.د خپل ميړه نه د عدت د نفقې دعوه كوي.او ميړه چونكه شافعي المسلك دې.خكه دده په اعتقاد كې مطلقه ثلاثه لپاره نفقه نشته.يا يو سړې د ګاونډې توب په وجه د شفعه دعوه اوكړله.او مشترى د شافعي المسلك كيدلو په وجه د شفعه جوار اعتقاد نه لري.نو په دې صورت كې حاصل معنى باندې نه بلكه سبب باندې به قسم اخستلې شي.خكه كه هغه په حاصل معنى باندې قسم اوخوړلو.او داسې ئې اووئيل.چه په خدائې قسم ما باندې ددې دعدت نفقه نشته.يا ما باندې دده لپاره د ګاونډې توب شفعه نشته.نو هغه به د خپل اعتقاد موافق پخپل قسم كې رشتونې وي.او د نفقې مدعيه (يعنى ښځه) او د مدعى شفعه په حق كې به رعايت پاتې كيږي.

وإن كان سببا لا يرتفع برافع اوكه سبب داسې وي.چه په يو لرې كونكى سره نه لرې كيږي. فالتحليف على السبب بالإجماع نو بالاجماع به سبب باندې قسم اخستلې شي. (كالعبد المسلم إذا ادعى العتق على مولاه) لكه يو مسلمان غلام خپل مولا باندې د آزادئ دعوه اوكړله. بخلاف الأمة والعبد الكافر) په خلاف د وينځې او كافر غلام، لأنه يكرر الرق عليهما بالردة واللحاق خكه چې وينځې باندې په مرتد كيدلو او دارالحرب كې شامليدلو سره رقيت مكرر كيږي. وعليه بنقض العهد واللحاق،او په ده (كافر غلام) باندې د عهد په ماتولو او دارالحرب كې شامليدلو سره (مكرر كيږي). ولا يكرر على العبد المسلم مسلمان غلام باندې نه مكرر كيږي.

**تشريح:** اوكه سبب داسې وي.چه لرې كاوه سره لرې كيداې شي.نو بالاجماع به سبب باندې قسم اخستلې شي.مثلاً يو مسلمان غلام خپل مولا باندې د عتق دعوه اوكړله.نو مولا نه بالاجماع دا قسم اخستلې شي.چه په خدائې قسم ما دى نه دې آزادكړې.خكه چې آزادي يعنى سبب داسې شئ دې.چه دا دچا په لرې كاوه سره نه لرې كيږي.البته كه وينځې د آزادئ دعوه اوكړله.يا كافر غلام د آزادئ دعوه اوكړله.نو په دې دواړو صورتونو كې به مدعى عليه نه حاصل معنى باندې قسم اخستلې شي.يعنى مدعي عليه به وائي.چه په خدائې قسم دا وينځه يا دا كافر غلام فى الحال آزاد نه دې.وجه ددې داده.كه وينځه د آزاديدلو نه روسته مرتده شوه.او دارالحرب ته لاړله.او كافر غلام نقض د عهد اوكړو.او دارالحرب ته لاړلو.نو دوى باندې رقيت دوباره خور شو.او هركله چې رقيت دوباره پيدا شو.نو ددوى آزادي ختمه شوه.ګويا ددوى دواړو عتق لرې كيداې شي.او هركله چې د سبب يعنى د وينځې اود كافر غلام آزادي لرې كيدلې شي.نو ددوى دواړو د مدعى عليه څخه به حاصل معنى باندې قسم اخستلې شي.او سبب باندې به قسم نشي اخستلې.او پاتې

شو مسلمان غلام، نوکه دې ازاد کړې شو.نو دده ازادی نشي لرې کیدلې.اونه په ده باندې دوباره رقیت راتلې شي.نو که مسلمان غلام د عتق دعوه اوکړی.نو مدعی علیه څخه به سبب باندې قسم اخستلې شي.

**وارث باندې د میراث په غلام کښې دعوی او د قسم اخستلو طریقه**

قَالَ: (وَمَنْ وَرِثَ عَبْدًا) که یوکس ته په میراث کې غلام ملاو شو. وَادَّعَاهُ آخَرُ او په دې باندې دوهم کس دعوه اوکړله. يُسْتَحْلَفُ عَلَى عِلْمِهِ) نو وارث څخه به دده په علم باندې قسم اخستلې شي. لِأَنَّهُ لَا عِلْمَ لَهُ بِمَا صَنَعَ الْمُوَرِّثُ څکه که وارث ته علم نه وی.کوم چې دده مورث کړی دی. فَلَا يَحْلِفُ عَلَى الْبَتَاتِ نو دده څخه به قطعی قسم اخستلې شي.

تشریح: مسئله داده.که یوسړی په میراث کې یو غلام حاصل کړو.او په دې باندې بل سړی د خپل ملکیت دعوه اوکړله.او مدعی سره بینه نشته.نو مدعی علیه یعنی وارث څخه به دده په علم باندې قسم اخستلې شي.چه،، په خدائې قسم ماته علم نشته،چه دا غلام یا دا شئ کوم چې زما په قبضه کې دې.دا ددې مدعی ملك دې،، یعنی مدعی علیه څخه به قطعی قسم نشي اخستلې.چه په خدائې قسم دا غلام ددې مدعی ملك نه دې.چه دده مورث دا غلام د کوم ځائې نه او څنګه حاصل کړې دې.او هرکله چې داسې ده.نو دده څخه به قطعی قسم څنګه اخستلې شي.

(وَإِنْ وَهَبَ لَهُ) او که ده ته دا غلام هبه ورکړې شوی وی. أَوِ اشْتَرَاهُ یا ئې دا اخستې وی. يَحْلِفُ عَلَى الْبَتَاتِ) نو دده څخه به قطعی قسم نشي اخستلې. لِوُجُودِ الْمُطْلَقِ لِلْيَمِينِ څکه چې د قسم ورکاوه والا شئ موجود دې. إِذِ الشِّرَاءُ سَبَبٌ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ وَضْعًا څکه چې شراء د ملك د ثبوت وضعی سبب دې. وَكَذَا الْهِبَةُ.او دغه ډول هبه ده.

تشریح: که یوکس ته دا غلام په هبه کې ملاو شو.یا ئې دا واخستلو.او دوهم سړی د خپل ملکیت دعوه اوکړله.او مدعی سره بینه نشته.نو په دې صورت کې به مدعی علیه یعنی موهوب له او مشتری نه قطعی قسم اخستلې شي.چه،، په خدائې قسم دا غلام ددې مدعی ملك نه دې،، څکه چې مدعی علیه سره داسې دلیل (هبه یا شراء) موجود دې.چه دې شرعاً د خپل ملك قسم خوړلې شي.او هرکله چې مدعی علیه د دلیل په وجه د خپل ملك نه کیدلو قسم هم خوړلې شي.او هغه دلیل (لکه څنګه چې موږ بیان کړل) هبه یا شراء ده.څکه چې شراء د ملك ثابتولو شرعی سبب دې.او دغه ډول هبه هم د ملك د ثبوت شرعی سبب دې.یعنی یوکس یو شئ واخستلو.نو هغه شرعاً د اخستلی شوی شئ مالك شو.او دغه ډول کله چې ده ته په هبه کې ملاویدل قطعی معلوم دی.خودا معلومه نه ده.چه مورث ته دا شئ د کوم ځائې نه او څنګه ملاو شوې دې.کیدای شي.چه مورث غصب کړې وی.نود میراث په صورت کې به مدعی علیه نه صرف دده په علم باندې قسم اخستلې شي.او قطعی قسم به نشي اخستلې.

قَالَ: (وَمَنِ ادَّعَى عَلَى آخَرَ مَالًا) او که یو کس په بل باندې د مال دعوه اوکړله. فَافْتَدَى يَمِينَهُ بیا ده د خپل قسم فدیه ورکړله. أَوْ صَالَحَهُ مِنْهَا عَلَى عَشَرَةٍ یا ئې هغه سره صلح اوکړله. فَهُوَ جَائِزٌ) نودا جائز ده. وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اودا د حضرت عثمان ﷺ نه نقل دی.. (وَلَيْسَ لَهُ او مدعی ته دا اختیار نشته. أَنْ يَسْتَحْلِفَهُ عَلَى تِلْكَ الْيَمِينِ أَبَدًا) چې هغه د مدعی علیه نه دا قسم واخلی. لِأَنَّهُ أَسْقَطَ حَقَّهُ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ څکه چې مدعی خپل حق ساقط کړې دې.

تشریح: اوکه یو سړی د بل کس د مال دعوه اوکړله.او مدعی سره بینه موجود نه وی.داسې مدعی علیه لس درهم دخپل قسم فدیه مقرر کړله.یا مدعی په لس درهمه باندې صلح اوکړله.نودا فدیه مقررول، او صلح کول جائز دی.او فدیه مقررول د حضرت عثمان ﷺ نه نقل دی.نو فدیه اخستل او صلح کاوه سره چې کله مدعی خپل حق ساقط کړو.نو اوس ددې نه روسته به مدعی ته د قسم اخستلو اختیار هم نه وی.



## باب التحالف

ژباړه: (دا) باب په دواړو کې د هریو نه د قسم اخستلو (په بیان کې) دې.

تشریح: علامه مرغینانی رحمه الله د یوقسم حکم نې د دوو قسمونو په حکم باندې څکه مقدم کړلو.چه یو طبعاً د دوو نه وړاندې وی نویه دې وجه ئې وضعاً هم د یوقسم حکم د دوو قسمونو په حکم باندې مقدم کړلو. چې وضع د تبع موافق شي.

**د بائع او مشتري په مبیع یا ثمن کښې د اختلاف مسئله**

قَالَ: فرمائی. (وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ فِي الْبَيْعِ که بائع او مشتری په بیع کې اختلاف اوکړو. فَادَّعَى أَحَدُهُمَا ثَمَنًا نو په دوی دواړو کې یو کس د ثمن دعوه اوکړله. وَادَّعَى الْبَائِعُ أَكْثَرَ مِنْهُ او بائع ددې نه د زیاتو دعوه اوکړله. أَوِ اعْتَرَفَ الْبَائِعُ بِقَدْرٍ مِنَ الْمَبِيعِ وَادَّعَى الْمُشْتَرِي أَكْثَرَ مِنْهُ فَأَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ و په دوی دواړو کې یو کس بینه قائم کړل. قُضِيَ لَهُ بِهَا) نو دده د بینه مطابق به دده لپاره حکم ورکولې شي. لِأَنَّ فِي الْجَانِبِ الْآخَرِ مُجَرَّدَ الدَّعْوَى څکه چې دوهم اړخ ته صرف دعوه ده. وَالْبَيِّنَةُ أَقْوَى مِنْهَا حالانکه بینه ددې نه قوی (او مضبوط) دی. (وَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً او که په دواړو کې هر یو بینه قائم کړل. كَانَتِ الْبَيِّنَةُ الْمُثْبِتَةُ لِلزِّيَادَةِ أَوْلَى) نود زیاتوالی ثابتونکې بینه به اولی (غوره) وی. لِأَنَّ الْبَيِّنَاتِ لِلْإِثْبَاتِ څکه چې ګواهیانې د ثابتولو لپاره وی. وَلَا تَعَارُضَ فِي الزِّيَادَةِ او په زیاتوالی کې څه تعارض هم نشته.

تشریح: صورت د مسئلې دادې.که بائع او مشتری د ثمن یا د مبیع په مقدار کې اختلاف اوکړو.مثلاً مشتری دعوه اوکړله.چه ثمن سل درهم دی.او بائع دعوه اوکړله.چه ثمن دوې (دوه) سوه درهم دی.یا مثلاً بائع دعوه اوکړله.چه مبیع یو من غنم دی.اومشتری دعوه اوکړله.چه مبیع دوې (دوه) منه غنم دی.نو دواړوکې یو کس خپله دعوه باندې بینه پیش کړل.او دوهم کس عاجز شو.نو کوم کس چې بینه پیش کړې دی.دهغه په حق کې به فیصله ورکولې شي.څکه چې دوهم اړخ ته صرف دعوه ده.او دې اړخ ته دعوه باندې بینه هم موجود دی.اود خالی دعوه نه بینه مضبوط دی.څکه چې بینه قاضی باندې حکم صادرکول لازموی.او صرف دعوه حکم نه لازموی.بهرحال هرکله چې بینه اقوی (او مضبوط) دی.نو په کوم اړخ کې چې بینه دی.هم هغه اړخ کې به حکم صادرکولې شي.

او که دواړو بینه قائم کړل.نود کوم کس بینه چې زیاتوالې ثابتوی.د هغه په بینه باندې به حکم ورکولې شي.څکه چې شریعت کې بینات (ګواهیانې) د ثابتولو لپاره وضع شوی دی.نود کوم کس بینه چې زیاتوالی ثابتونکې وی.د هغه بینه به زیات مثبت وی.او کوم بینه چې زیات مثبت وی.هغه به قبلولې شي.اود کوم بینه چې کموالې ثابتونکې وی.هغه به د زیاتوالی ثابتونکو معارض هم نه وی.نو هرکله چې مثبت للزیادت د معارض نه محفوظ دې.نوهم دا به قبلولې شي.

(وَلَوْ كَانَ الِاخْتِلَافُ فِي الثَّمَنِ وَالْمَبِيعِ جَمِيعًا او که اختلاف په ثمن او مبیع دواړو کې وی. فَبَيِّنَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى فِي الثَّمَنِ نو ثمن کې به د بائع بینه اولی وی. وَبَيِّنَةُ الْمُشْتَرِي أَوْلَى فِي الْمَبِيعِ) او مبیع کې به دمشتری بینه اولی وی. نَظَرًا إِلَى زِيَادَةِ الْإِثْبَاتِ د زیاتوالی ثابتولو اړخ ته په کتلو سره.. (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ او که دواړو کې یوکس سره هم بینه نه وی. قِيلَ لِلْمُشْتَرِي نو مشتری ته به وئیلې شي. إِمَّا أَنْ تَرْضَى بِالثَّمَنِ الَّذِي ادَّعَاهُ الْبَائِعُ وَإِلَّا فَسَخْنَا الْبَيْعَ، یا خوته په دې ثمن باندې راضی شه.د کوم چې بائع مدعی دې.ګنی موږ به بیع فسخ کړو. وَقِيلَ لِلْبَائِعِ او بائع ته به وئیلې شي. إِمَّا أَنْ تُسَلِّمَ مَا ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِي مِنَ الْمَبِيعِ وَإِلَّا فَسَخْنَا الْبَيْعَ) یا خوته هغه مبیع اوسپاره.د کوم چې مشتری مدعی دې.ګنی موږ به بیع فسخ کړو. لِأَنَّ الْمَقْصُودَ قَطْعُ الْمُنَازَعَةِ، څکه

چې مقصود جګړه ختمول دي. وَهٰذِهٖ جِهَةٌ فِيْهِ او د جګړه ختمولو دا هم يوه طريقه ده. لِأَنَّهُمَا رُبَّمَا لَا يَتَرَاضَيَانِ بِالْفَسْخِ ځکه چې ډير ځل بائع او مشتري فسخ باندې نه راضي کيږي. فَإِذَا عَلِمَا بِهِ يَتَرَاضَيَانِ به نو هرکله چې دوی دواړه په فسخ باندې خبر شي. نو خپلو کې به راضي شي.

**تشريح:** اوکه په ثمن او مبيع دواړو کې اختلاف وي. مثلاً بائع اووئيل. چه ما دا وينځه ستا په لاس د سل ديناړو په عوض خرڅه کړې ده. او مشتري اووئيل. چه تا دا وينځه اودا غلام د پنځوس درهمو په عوض راخرڅه کړې ده. او دواړو په خپلو خپلو دعوو باندې بينه پيش کړل. نو د ثمن په مقدار کې به د بائع بينه قبلولې شي. اود مبيع په مقدار کې به د مشتري بينه قبلولې شي. نو په مذکوره مثال کې به وينځه او غلام دواړه د سل ديناړو په عوض مشتري لپاره وي. ځکه چې دې کې د زياتوالي ثابتولو د اړخ لحاظ ساتل دي.

اوکه دواړو کې يو کس سره هم بينه نه وي. نو حاکم به مشتري ته واني. چه يا خوته په دې ثمن باندې راضي شه. د کوم چې بائع مدعي دې. ګني موږ به عقد بيع فسخ کړو. او حاکم به بائع ته واني. چه يا خوته هغه مبيع اوسپاره. د کوم چې مشتري مدعي دې. ګني نو موږ به عقد بيع فسخ کړو. ځکه چې مقصود جګړه ختمول دي. اودا هم د جګړې ختمولو يوه طريقه ده. ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې عاقدين (بائع او مشتري) په فسخ د بيع باندې نه راضي کيږي. نو هرکله چې د حاکم په خبرولو سره دوی ته د فسخ علم اوشو. نو دوی دواړه به خپل منځ کې د رضامندئ کوښښ کوي. اود دواړو خپل منځ کې رضامند کيدلو سره هم چونکه جګړه ختميږي. په دې وجه به قاضي ته ددې طريقې هم اجازت وي.

### د بائع او مشتري نه راضي کيدو په صورت کښې د قسم اخستلو طريقه

(فَإِنْ لَمْ يَتَرَاضَيَا) بياکه بائع او مشتري دواړه راضي نشو. اسْتَحْلَفَ الْحَاكِمُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى دَعْوَى الْآخَرِ) نو حاکم به دوی دواړو کې هريو نه د دوهم په دعوه باندې قسم اخلي. وَهٰذَا التَّحَالُفُ قَبْلَ الْقَبْضِ عَلَى وِفَاقِ الْقِيَاسِ، اود قسم دا حکم د قبضه نه وړاندې د قياس موافق دې. لِأَنَّ الْبَائِعَ يَدَّعِي زِيَادَةَ الثَّمَنِ ځکه چې بائع د ثمن د زيادت دعوه کوي. وَالْمُشْتَرِي يُنْكِرُهُ، او مشتري ددې نه منکر دې. وَالْمُشْتَرِي يَدَّعِي وُجُوبَ تَسْلِيمِ الْمَبِيعِ بِمَا نَقَدَ، او مشتري په عوض کې د مبيع سپارل واجبولو دعوه کوي. وَالْبَائِعُ يُنْكِرُهُ، او بائع ددې منکر دې. فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُنْكِرٌ فَيَحْلِفُ؛ نو په دوی کې به د هر يو نه قسم اخستلې شي. فَأَمَّا بَعْدَ الْقَبْضِ او باقې شو د قبضه نه روسته (قسم اخستل) فَمُخَالِفٌ لِلْقِيَاسِ نودا خلاف قياس دی. لِأَنَّ الْمُشْتَرِي لَا يَدَّعِي شَيْئًا ځکه چې مشتري خو دڅه دعوه نه کوي. لِأَنَّ الْمَبِيعَ سَالِمٌ لَهُ ځکه چې مبيع دده لپاره محفوظ دې. فَبَقِيَ دَعْوَى الْبَائِعِ فِي زِيَادَةِ الثَّمَنِ نود بائع د ثمن د زياتوالي دعوه پاته باتې شوه. وَالْمُشْتَرِي يُنْكِرُهَا او مشتري ددې منکر دې. فَيُكْتَفَى بِحَلِفِهِ، لٰكِنَّا عَرَفْنَاهُ بِالنَّصِّ نو د مشتري په قسم به اکتفاء کولې شي. خودا موږ په نص سره پيژندلې دی. وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او هغه د نبی کريم ﷺ قول دې. {إِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ کله چې دواړه بيع کونکی اختلاف اوکړي. وَالسِّلْعَةُ قَائِمَةٌ بِعَيْنِهَا او مال مبيع بعينه قائم وی. تَحَالَفَا وَتَرَادَّا} نو دواړه به خپل منځ کې قسم خوری. او بيع به واپس کوی.

**تشريح:** مسئله داده. که بائع او مشتري دواړو اختلاف اوکړو. او دواړه خپل منځ کې رضامند هم نشو. نو حاکم به دواړو کې هر يو نه د بل کس د دعوه خلاف قسم اخلی. که دواړو قسم اوخوړلو. نو بيع به فسخ کولې شی. که مشتري په مبيع باندې قبضه کړې وی. اوکه قبضه نه وی کړې.

علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی. چه خپل منځ کې د قسم خوړلو داحکم د مشتري د قبضې نه وړاندې د قياس موافق دې. او د قبضې نه روسته د قياس خلاف دې. د قبضې نه وړاندې د قياس موافق ځکه دې. چه بائع د ثمن د زياتوالي مدعی دې. او مشتري ددې منکر دې. او مشتري ددې اداکړې شوی ثمن په عوض کې د مبيع سپارلو د وجوب مدعی دې. او بائع ددې منکر دې. حاصل داچه دواړو کې هريو منکر دې.



اود مشهور حديث «والیمین علی من أنکر» په وجه منکر باندې قسم عائد کيږي. نو په دواړو کې به هر يو نه قسم اخستلې شی. نو که دواړو قسم اوخوړلو. يا دواړو د قسم انکار اوکړو. نو بيع به فسخ کولای شی. اوکه يو کس انکار اوکړو. او يو قسم اوخوړلو. نود انکار کونکی خلاف به دعوه ثابتولې شی. اود مشتري د قبضې نه روسته دواړو نه قسم اخستل، د قياس خلاف ځکه دی. چه هرکله مبيع د مشتري په قبضه کې صحيح سلامت راغئ. نو هغه به د هيڅ شئ مدعی نه وی. بلکه بائع به د ثمن د زياتوالي مدعی وی. او مشتري به ددې منکر وی. حاصل داچه د قبضې نه روسته صرف مشتري منکر دې. اوقسم د منکر نه اخستلې شی. نود قبضې نه روسته صرف مشتري نه قسم اخستل پکار دی. خو چونکه دواړو نه قسم اخستل په نص د حديث سره ثابت دی. په دې وجه به قبضې نه روسته به هم دواړو نه قسم اخستلې شی. او نص حديث دادې. چه کله بائع او مشتري اختلاف اوکړي. او مال مبيع موجود وی. نودواړه دې قسم خوری. او بيع دې رد کړي.

### د قسم پيل به د چا نه کولې شي!

(وَيَبْتَدِئُ بِيَمِينِ الْمُشْتَرِي) او قاضي به د مشتري په قسم سره پيل کوی. وَهٰذَا قَوْلُ مُحَمَّدٍ وَأَبِي يُوسُفَ آخِرًا، اودا د امام محمد رحمه الله قول. او د امام ابويوسف رحمه الله آخری قول دې. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دې. وَهُوَ الصَّحِيحُ او هم دا صحيح دی. لِأَنَّ الْمُشْتَرِي أَشَدُّهُمَا إِنْكَارًا ځکه چې دې دواړو کې د مشتري انکار کول زيات سخت دی. لِأَنَّهُ يُطَالِبُ أَوَّلًا بِالثَّمَنِ ځکه چې هم دده نه د ثمن مطالبه اولاً کولې شی. وَلِأَنَّهُ يَتَعَجَّلُ فَائِدَةَ النُّكُولِ وَهُوَ إِلْزَامُ الثَّمَنِ، يا ځکه چې د انکار فائده يعنی ثمن لازمول زر ښکاره کيږي. وَلَوْ بُدِئَ بِيَمِينِ الْبَائِعِ اوکه قاضي د بائع د قسم نه پيل اوکړله. تَتَأَخَّرُ الْمُطَالَبَةُ بِتَسْلِيمِ الْمَبِيعِ إِلَى زَمَانِ اسْتِيفَاءِ الثَّمَنِ. نو د مبيع سپارلو مطالبه به دده د ثمن وصولولو زمانې پورې موخر کولې شی.

**تشريح:** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. چه په کوم صورت کې بائع او مشتري دواړو نه قسم اخستلې شی. هغه صورت کې به قاضي د مشتري د قسم نه پيل کوی. يعنی مخکې به مشتري نه قسم اخلی. او بيا به بائع نه قسم اخلی. اودا د امام محمد رحمه الله قول دې. اود امام ابويوسف رحمه الله دوهم قول دې. اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دې. او هم دا صحيح دې. ځکه چې د مشتري انکار سخت دې. او سخت ځکه دې چه کله د مشتري نه د ثمن مطالبه کولې شی. نو هغه د دوې (دوه) څيزونو انکار کوی. يو د اصل وجوب ثمن. او دوهم د وجوب اداء. او هرکله چې داسې ده. نو دده انکار سخت شو. او ځکه چې اولاً مشتري نه د ثمن مطالبه کولې شی. او هرکله چې اول مشتري نه د ثمن مطالبه کيږي. نود هغه انکار به هم وړاندې وی. اود انکار مخکې کيدل، دا هم دده د سخت کيدلو دليل دې. او ځکه هم چې د مشتري د قسم د انکار فائده فوراً ښکاره کيږي. ځکه چې کله مشتري د قسم نه انکار اوکړي. نو په ده باندې فوراً ثمن لازمولې شی. اود قسم فائده انکار لپاره مشروع شوې ده. بې فائدې نه ده مشروع شوې.

علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. که قاضي مخکې د بائع نه قسم اخستلو. او بائع انکار کړې وي. نو دده دانکار په وجه نو ددې انکار په وجه به د مبيع سپارلو مطالبه هغه وخته پورې موخر کولې شوه. ترکومه پورې چې هغه ثمن وصول کړې وي. يعنی د بائع د قسم د انکار فائده فوراً نه مرتب کيږي. يعنی بالفعل هغه ته دا حکم نشی ورکولې. چه د مشتري د دعوه موافق مبيع اوسپاري. ځکه چې هغه ته وړاندې د ثمن وصولولو حق دی. نو وړاندې به مشتري نه قسم اخستلې شی.

(وَكَانَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يَقُولُ أَوَّلًا: او امام ابويوسف رحمه الله به مخکې فرمائيل. يَبْدَأُ بِيَمِينِ الْبَائِعِ چې د بائع د قسم څخه به پيل کولې شی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی. {إِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ چې کله بائع او مشتري اختلاف اوکړي. فَالْقَوْلُ مَا قَالَهُ الْبَائِعُ} [1] نو خبره هم هغه ده. کومه چې بائع کړې ده. خَصَّهُ

---

[1] من حديث عبدالله بن مسعود رضي الله عنه أخرجه أصحاب السنن الأربعة منهم أبوداود فی البيوع باب ٧٢ رقم (٣٥١١)۔

بِالذِّكْرِ نو (نبی کریمﷺ) خاص کړ بائع ذکر کړو. وَأَقَلُّ فَائِدَتِهِ التَّقْدِيمُ او د تخصیص کم تر فائده داده. چه بائع مقدم کړې شي.

**تشريح:** او امام ابویوسف رحمه الله به مخکښې فرمائيل. چه قاضی به مخکښې د بائع نه قسم اخلی. او په دليل کښې به ئې دا حديث پيش کولو. چه کله بائع او مشتری اختلاف اوکړی. نود بائع قول به معتبر وی. نو نبی کریمﷺ خاص کړ بائع ذکر کړو. او ددې تخصیص کم ازکم فائده داده. چه بائع مقدم کړې شي. نو ثابته شوه. چه قسم کښې به بائع مقدم کولې شي. خو مشتری نه وړاندې قسم اخستلو کښې هغه فائده کومه چې موږ وړاندې ذکر کړې ده. ددغه فائدې په لحاظ به وړاندې مشتری نه قسم اخستلې شي.

## په بيع مقايضه يا بيع صرف كښې قسم اخستل

(وَإِنْ كَانَ بَيْعَ عَيْنٍ بِعَيْنٍ او که د مال عين بيع دمال عين په عوض وی. أَوْ ثَمَنٍ بِثَمَنٍ يا د ثمن بيع د ثمن په عوض وی. بَدَأَ الْقَاضِي بِيَمِينِ أَيِّهِمَا شَاءَ) نو قاضی چې د کوم په قسم سره غواړی. ابتداء دې اوکړی. لِاسْتِوَائِهِمَا خکه چې دواړه برابر دی.

(وَصِفَةُ الْيَمِينِ أَنْ يَحْلِفَ الْبَائِعُ بِاللَّهِ مَا بَاعَهُ بِأَلْفٍ او د قسم صفت (طريقه) دادې. چه بائع څخه به قسم اخلی ،، په خدائې قسم ما دا مال دده په لاس د زرو (درهمو) په عوض نه دې خرڅ کړې ،، وَيَحْلِفُ الْمُشْتَرِي بِاللَّهِ مَا اشْتَرَاهُ بِأَلْفَيْنِ) او مشتری څخه به قسم اخلی ،، په خدائې قسم ما دا مال د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض نه دې خرڅ کړې ،،.

**تشريح:** او د زيادات د بيان مطابق به د تاکيد په طور اثبات او نفی دواړو باندې قسم اخستلې شي. مثلاً بائع به داسې وائی. چه ،، په خدائې قسم ما دا مال د زرو (درهمو) په عوض نه دې خرڅ کړې. بلکه د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض مې خرڅ کړې دی. او مشتری به داسې وائی. په خدائې قسم ما دا مال د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض نه دې اخستې. بلکه د زرو (درهمو) په عوض مې اخستې دې. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. صحيح خبره داده. چه صرف په نفی باندې قسم واخستلې شي. او اثبات باندې قسم وانخستلې شي. لکه څنګه چې مبسوط کښې دی. خکه چې د قسمونو وضع هم په دې طريقه ده. لکه څنګه چې حديث د قسامت په دې باندې دلالت کوی. د قسامت د حديث حاصل دادې. که څوک محله کښې مړ بيا موندې شو. او د قاتل علم نه وی. نو د مقتول اولياء به محله کښې پنځوس سړی منتخب کړی. او هغوی څخه به قسم اخلی. او قسم کښې به هرسړې داسې وائی. چه ،، په خدائې قسم دې ما نه دې قتل کړې. او نه زه دده قاتل پيژنم ،، يعنی په حديث د قسامت کښې به صرف نفی باندې قسم اخستلې شي. او اثبات باندې به قسم نشی اخستلې. ددې نه معلومه شوه. چه د ايمان (قسمونو) وضع نفی لپاره ده. او اثبات لپاره نه ده.

## د دواړو د قسم خوړلو حکم

قَالَ: (فَإِنْ حَلَفَا نو که دواړو قسم اوخوړلو. فَسَخَ الْقَاضِي الْبَيْعَ بَيْنَهُمَا) نو قاضی به د دواړو په منځ کښې بيع فسخ کوی. وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَا يَنْفَسِخُ بِنَفْسِ التَّحَالُفِ او دا په دې خبره باندې دلالت کوی. چه په نفس تحالف باندې بيع نه فسخ کيږی. لِأَنَّهُ لَمْ يَثْبُتْ مَا ادَّعَاهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خکه چې دوی دواړو کښې هرکس چې کومه دعوه کړې وه. هغه ثابته نشوه. فَيَبْقَى بَيْعٌ مَجْهُولٌ نو بيع مجهول پاتې پاتې شوه. فَيَفْسَخُهُ الْقَاضِي قَطْعًا لِلْمُنَازَعَةِ. نو قاضی به د جګړې [illegible] او لپاره دا فسخ کوی. أَوْ يُقَالُ يا به ووئيلې شي. إِذَا لَمْ يَثْبُتِ الْبَدَلُ چې هرکله بدل ثابت نشو. يَبْقَى [illegible] بيع بلا بدل (يعنی بې عوضه) پاتې شوه. وَهُوَ فَاسِدٌ او دا فاسد ده. وَلَا بُدَّ مِنَ الْفَسْخِ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ. [illegible] کول ضروری دی.



**تشريح:** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی. که بائع او مشتری دواړو قسم اوخوړلو. نو قاضی به د دواړو په منځ کښې عقد بيع فسخ کړی. د متن ددې حکم نه دا خبره معلومه شوه. چه صرف د دواړو په قسم خوړلو سره بيع نه فسخ کيږی. ترکومه پورې ئې چې قاضی فسخ نکړی. خکه دواړو کښې چې هريو کس کومه دعوه کړې وه. د دواړو د قسم خوړلو په وجه هغه ثابته نشوه. نو د ثمن مجهول يا مبيع مجهول يا د دواړو مجهول کيدلو په وجه بيع مجهوله شوه. او هرکله چې بيع مجهول شوه. نود دواړو په منځ کښې د جګړې ختمولو لپاره به قاضی دا بيع فسخ کوی. يا داسې اووايئ. چه د عاقدينو په اقوالو کښې د تعارض په وجه بدل ثابت نشو. او بيع بلا بدل پاتې شوه. او بلا بدل بيع فاسد وی. نودا بيع فاسده شوه. او د بيع فاسد فسخ کول ضروری دی. خو چونکه دوی دواړو دا فسخ کړې نه ده. په دې وجه به قاضی ددوی دواړو قائم مقام شي. او دا بيع به فسخ کړی.

قَالَ: (وَإِنْ نَكَلَ أَحَدُهُمَا عَنِ الْيَمِينِ او که دواړو کښې يو د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. لَزِمَهُ دَعْوَى الْآخَرِ) نود دوهم دعوه به ده باندې لازم وی. لِأَنَّهُ جُعِلَ بَاذِلًا خکه چې منکر باذل (په بهادرئ سره په حق ور کاوه رضامند) کرځولې شوې دې. فَلَمْ يَبْقَ دَعْوَاهُ مُعَارِضًا لِدَعْوَى الْآخَرِ نو دده دعوه به د بل د دعوه معارض نه وی. فَلَزِمَ الْقَوْلُ بِثُبُوتِهِ نو دده د ثبوت قائل کيدل لازم شو.

**تشريح:** که په دواړو کښې يو کس د قسم نه انکار اوکړو. نو منکر باندې به د دوهم دعوه لازم وی. خکه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول مطابق منکر باذل (په بهادرئ سره پخپل حق ور کاوه باندې راضی) دې. او هرکله چې داسې ده. نو دده دعوه د بل د دعوه معارض نشوه. او هرکله چې دده دعوه معارض نشوه. نو ګويا منکر د بل د دعوه د ثبوت قائل شو. اوهرکله چې منکر د بل د دعوه د ثبوت قائل شو. نو منکر باندې به د بل دعوه لازم وی.

## په ميعاد يا شرط خيار کښې يا د څينې ثمن په اختلاف کښې د قسم حکم

قَالَ فرمائی. (وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْأَجَلِ أَوْ فِي شَرْطِ الْخِيَارِ أَوْ فِي اسْتِيفَاءِ بَعْضِ الثَّمَنِ او که بائع او مشتری په ميعاد يا خيارشرط کښې يا په بعض ثمن وصولولو کښې اختلاف اوکړو. فَلَا تَحَالُفَ بَيْنَهُمَا) نو ددوی په منځ کښې (دو طرفه) قسم نشته. لِأَنَّ هَذَا اخْتِلَافٌ فِي غَيْرِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَالْمَعْقُودِ بِهِ، خکه چې دا اختلاف په معقودعليه او معقود به نه علاوه کښې دې. فَأَشْبَهَ الِاخْتِلَافَ فِي الْحَطِّ وَالْإِبْرَاءِ، نودا په ثمن کمولو او معاف کاوه کښې د اختلاف مشابه شو. وَهَذَا لِأَنَّ بِانْعِدَامِهِ لَا يَخْتَلُّ مَا بِهِ قِوَامُ الْعَقْدِ، او دا خکه چې د ذکر شوی څيزونو معدوم کيدلو سره هغه شئ کښې خلل نه واقع کيږی. په کوم سره چې د عقد قوام (او مضبوطی) ده. بِخِلَافِ الِاخْتِلَافِ فِي وَصْفِ الثَّمَنِ وَجِنْسِهِ په خلاف د وصف ثمن يا جنس ثمن کښې د اختلاف، (حَيْثُ يَكُونُ بِمَنْزِلَةِ الِاخْتِلَافِ فِي الْقَدْرِ فِي جَرَيَانِ التَّحَالُفِ خکه) چې دا په تحالف (خپل منځ کښې قسم) جاری کيدلو کښې په مقدار کښې د اختلاف په مرتبه کښې دې. لِأَنَّ ذَلِكَ يَرْجِعُ إِلَى نَفْسِ الثَّمَنِ خکه چې دا به نفس ثمن اړخ ته راجع وی. فَإِنَّ الثَّمَنَ دَيْنٌ خکه چې ثمن دين دې. وَهُوَ يُعْرَفُ بِالْوَصْفِ، او دا ثمن سره پيژندلې کيږی. وَلَا كَذَلِكَ الْأَجَلُ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِوَصْفٍ، او ميعاد وصف نه دی. أَلَا تَرَى آيا ته نه ګورې. أَنَّ الثَّمَنَ مَوْجُودٌ بَعْدَ مُضِيِّهِ چې ثمن د ميعاد تيريدلو نه روسته هم موجود پاتې کيږی. (وَالْقَوْلُ قَوْلُ مَنْ يُنْكِرُ الْخِيَارَ وَالْأَجَلَ مَعَ يَمِينِهِ) او قسم سره دهغه کس قول قبليږی. څوک چې د خيار او ميعاد منکر وی. لِأَنَّهُمَا يَثْبُتَانِ بِعَارِضِ الشَّرْطِ خکه چې دا دواړه شيان د عارضی شرط په وجه ثابتيږی. وَالْقَوْلُ لِمُنْكِرِ الْعَوَارِضِ او قول د عوارضو د منکر معتبر وی.

**تشريح:** ددې په خلاف که د ثمن په وصف يعنی کره کوټه کيدلو کښې اختلاف وی. يا د ثمن جنس يعنی دراهم او دنانير کيدلو کښې اختلاف وی. نودا به داسې وی. لکه چې د ثمن په مقدار کښې ئې اختلاف کړې وی. اود ثمن په مقدار کښې اختلاف تحالف واجبوی. نود ثمن په وصف او جنس کښې اختلاف نفس ثمن کښې هم تحالف

واجبوي.او وجه ددې داده.چه په وصف او جنس کې اختلاف په حقیقت کې اصل ثمن کې اختلاف دې.ځکه چې ثمن په مال دین کې وي.ددې شناخت (او پیژندل) په وصف سره کیږي.چه کره دی ،او که کوټه دی.نو هرکله چې وصف یعنی معروف کې اختلاف وي.نو معرف یعنی ثمن کې به هم اختلاف وي.او د میعاد حال داسې نه دې.یعنی میعاد کې اختلاف د ثمن په مقدار کې د اختلاف پشان نه دې.ځکه چې میعاد وصف نه دې.او ګوري: د میعاد تیریدلو نه روسته هم ثمن موجود پاتې کیږي.نو میعاد که وصف وي.نو د میعاد په تیریدلو سره به وصف کې خلل پیدا کیدلو.

اوس پاتې شوه دا خبره چې هرکله په ذکر شوي ځیزونو کې تحالف نشته.نو دچا قول به معتبر وي.نو په دې اړه کې صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه کوم عاقد د خیار او میعاد منکر وي.د هغه قول به مع الیمین معتبر وي.ځکه چې دا دواړه شیان د عارض شرط په وجه موندلې کیږي.یعنی کله چې د میعاد یا خیار شرط اولګولې شي.نو هله به دا دواړه شیان موندلې شي.ګنې نشي موندلې.اود عوارضو د منکر قول مع الیمین معتبر وي.نود مذکوره ځیزونو د منکر قول به مع الیمین معتبر وي.

## د مبیع هلاکیدو نه روسته د اختلاف په صورت کښې د قسم حکم

قَالَ:فرمائي. ﴿فَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ﴾ که مبیع هلاک شو. ﴿ثُمَّ اخْتَلَفَا﴾ بیا بائع او مشتري د ثمن په مقدار کې اختلاف اوکړو. ﴿لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله﴾[1] نود ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز به دواړه قسم نه خوري. ﴿وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي﴾ او قول به د مشتري معتبر وي. ﴿وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ﴾ او امام محمد رحمه الله فرمائي ﴿يَتَحَالَفَانِ﴾ دواړه به قسم خوري. ﴿وَيُفْسَخُ الْبَيْعُ عَلَى قِيمَةِ الْهَالِكِ﴾ او د هلاک شوي په قیمت به بیع فسخ کولې شي. ﴿وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ﴾،اوهم دا قول د امام شافعي دې. ﴿وَعَلَى هَذَا إِذَا خَرَجَ الْمَبِيعُ عَنْ مِلْكِهِ﴾ او هم په دې اختلاف کله چې بیع د مشتري د ملك نه وتلې وي. ﴿أَوْ صَارَ بِحَالٍ لَا يَقْدِرُ عَلَى رَدِّهِ بِالْعَيْبِ﴾. یا داسې شوې وي.چه د عیب په وجه ددې په واپس کاوه باندې قادر نه وي.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې.که د مشتري قبضه کاوه نه روسته مبیع هلاک شو.بیا بائع او مشتري د ثمن په مقدار کې اختلاف اوکړو.نود امام ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز به دواړو نه قسم اخستلې شي.بلکه د ثمن د مقدار په سلسله کې به دمشتري قول مع الیمین معتبر وي.او امام محمد او امام شافعي رحمهما الله فرمائي.چه دواړو ځخه به قسم اخستلې شي.که دواړو قسم اوخوړلو.نو بیع به فسخ کولې شي.او مشتري باندې به د هلاک شوي مبیع قیمت ورکول واجب وي.هم دا اختلاف هغه وخت دې.کله چې مبیع د مشتري د ملك نه وتلې وي.یا د عیب په وجه مشتري د مبیع په واپس کاوه قادر نه وي.

**لهما:** امام محمد او امام شافعي رحمهما الله دلیل دادې. ﴿أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَدَّعِي غَيْرَ الْعَقْدِ الَّذِي يَدَّعِيهِ صَاحِبُهُ﴾ چې دوی دواړو کې به هر یو دهغه عقد د علاوه دعوه کوي.د کوم دعوه چې دده انډیوال کوي. ﴿وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ﴾ او دوهم ددې منکر دې. ﴿وَأَنَّهُ يُفِيدُ دَفْعَ زِيَادَةِ الثَّمَنِ﴾ اودا د ثمن د زیاتوالی لرې کاوه فائده ورکوي. ﴿فَيَتَحَالَفَانِ، كَمَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي جِنْسِ الثَّمَنِ بَعْدَ هَلَاكِ السِّلْعَةِ﴾،نو دواړه دې قسم اوخوري.لکه کله چې د سامان هلاکیدلو نه روسته د ثمن په جنس کې اختلاف کړې وي.

**تشریح:** د امام محمد او امام شافعي رحمهما الله دلیل دادې.چه بائع او مشتري دواړو کې هریو ددې عقد د علاوه دعوه کوي.د کوم چې دده انډیوال مدعي دې.او دوهم ددې منکر دې.مثلاً بائع د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض د بیع دعوه کوي.او مشتري ددې منکر دې.او مشتري د زرو (درهمو) په عوض د بیع دعوه کوي.

---

[1] القول الراجح هوقول الشیخین رحمهما الله کذا فی نتائج الأفکار(۲۰۱\۷) ومجمع الأنهر(۳۶۲\۳) وشرح المجلة (۵۳۰\۵) المادة (۱۷۸۲) وکنز (۲۸۰) والدرالمختار(۴۷۹\۴) والهندیة (۳۳\۴) نقلاً عن القول الراجح (۱۷۴\۲)



او بائع ددې منکر دې.اودا خبره هم ښکاره ده.چه ،، بیع بالف،، د ،، بیع بالفین،، نه غیر ده.هم دا وجه ده. چې د بیع دوې (دوه) ګواهان که په مقدار د ثمن کې اختلاف اوکړي.نو ددوی نه قبلیږي.ځکه چې د دواړو ګواهي په جلا بیع باندې ده.او په هر یو بیع نصاب د شهادت نه دې پوره شوې.نو دچا ګواهي به هم قبول نه وي.

او پاتې شو دا سوال،چه د مبیع هلاکیدلو نه روسته د امام محمد رحمه الله په قول باندې د تحالف فائده څه ده.نو ددې ځواب دادې.چه د تحالف فائده داده.که مشتري د قسم خوړلو نه انکار اوکړي.نو په مشتري به د ثمن هغه زیاتوالې واجب وي.د کوم چې بائع مدعي دې.او که بائع د قسم نه انکار اوکړو.نو مشتري ځخه به د ثمن هغه زیاتوالې لرې کولې شي.د کوم چې بائع مدعي دې.بهرحال هرکله چې د تحالف فائده موجوده ده.نو دواړو ځخه به قسم اخستلې شي.اودا داسې ده.لکه چې د مبیع سامان هلاکیدلو نه روسته د ثمن په جنس کې اختلاف کړې وي.مثلاً یو کس دعوه اوکړله.د عقد بالدراهم،او دوهم کس د عقد بالدنانیر دعوه اوکړله.نو په دې صورت کې مشتري باندې د قیمت واپس کول لازمیږي.دغه ډول د متن په مسئله کې دواړو نه قسم اخستلې شي.او بیع به فسخ کولې شي.او مشتري باندې به د هلاك شوي مبیع قیمت واجبولې شي.

﴿وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ﴾ او د ابوحنیفه اوامام ابویوسف رحمهما الله دلیل دادې. ﴿أَنَّ التَّحَالُفَ بَعْدَ الْقَبْضِ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ﴾ چې د قبضې نه روسته خپل منځ کې قسم خلاف قیاس دې. ﴿لِأَنَّهُ سَلِمَ لِلْمُشْتَرِي مَا يَدَّعِيهِ﴾ ځکه چې بائع مشتري ته هغه مال سپارلې دې.د کوم چې هغه مدعي دې. ﴿وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ فِي حَالِ قِيَامِ السِّلْعَةِ﴾،خو شریعت هغه باندې د سامان قائمولو په صورت کې وارد شوې دې. ﴿وَالتَّحَالُفُ فِيهِ يُفْضِي إِلَى الْفَسْخِ﴾،او تحالف به دې کې ﴿مفضی الی الفسخ﴾ دې. ﴿وَلَا كَذَلِكَ بَعْدَ هَلَاكِهَا﴾ او ددې د هلاکیدلو نه روسته داسې نه ده. ﴿لِارْتِفَاعِ الْعَقْدِ﴾ ځکه چې عقد مرتفع دې ﴿فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَاهُ﴾ نو هغه ددې په معنی کې نشو.

**تشریح:** د حضرت امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله ① دلیل دادې.چه د مشتري د مبیع قبضه کاوه نه روسته تحالف خلاف قیاس دې.ځکه چې بائع مشتري ته هغه مال واپس کړې دې.دکوم چې مشتري مدعي دې.او شریعت کې تحالف هغه مال باندې وارد شوې دې.کله چې سامان د مبیع موجود وي.لکه چې د نبي کریم ﷺ ارشاد دې. ﴿إذا اختلف المتبایعان والسلعة قائمة بعینها تحالفا وترادا﴾ نو هرکله چې د مبیع د قبضه کاوه نه روسته د مبیع سامان موجود کیدلو په صورت کې تحالف ورادکیدل خلاف قیاس دی.نودا به د مبیع سامان هلاکیدلو صورت اړخ ته نه متعدی کیږي.یعنی د مبیع سامان هلاکیدلو صورت کې به تحالف واجب نه وي.

خوکه دا سوال اوکړې شي.چه د مبیع سامان هلاکیدلو حالت د مبیع سامان موجود کیدلو حالت سره ملحق کړې شي.اود هلاکیدلو حالت د موجود کیدلو حالت باندې قیاس کړې شي.نو په ﴿والتحالف فیه یفضی .....الخ﴾ سره دا ځواب ورکړې شوې دې.چه د مبیع سامان موجود کیدلو حالت کې ﴿تحالف مفضی الی الفسخ﴾ وي.اود بائع مال بعینه بائع اړخ ته واپس راتګ و سره د هر یو ضرر هم لرې کیږي.او د مبیع سامان هلاکیدلو نه روسته چونکه عقد بیع مرتفع شو.په دې وجه د مبیع سامان هلاکیدلو نه روسته تحالف داسې پاتې نشو.یعنی ،،مفضی الی الفسخ،، پاتې نشو.نود مبیع سامان هلاکیدلو حالت ددې د موجود کیدلو د حالت په معنی کې نه دې.نو الحاق او قیاس به هم باطل وي.

﴿وَلِأَنَّهُ لَا يُبَالِي بِالِاخْتِلَافِ فِي السَّبَبِ بَعْدَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ﴾ اوځکه چې د مقصود حاصلیدلو نه روسته د اختلاف د سبب پرواه نشي کیدلې.

**تشریح:** او د شیخینو رحمهما الله دوهم دلیل او د امام محمد او امام شافعي رحمهما الله د دلیل ځواب دادې.چه د مقصود حاصلیدلو نه روسته په سبب کې د اختلاف اعتبار نه کیږي.یعنی د بیع مقصود مشتري لپاره مبیع سلامت پاتې کیدل دی.نو هرکله چې بائع مشتري ته مبیع سپارلې دې.او هغه د مشتري په ملك کې هلاك شو.نو

مقصود حاصل شو. او هر کله چې مقصود حاصل شو. نود سبب ( عقد ) ذکر لغو شو. اود بائع او مشتري اختلاف د سبب نه بغیر په زر او دوې (دوه) زره ( درهمو ) کې شو. یعنې مشتري د زر ( درهمو ) مدعی دې. او بائع دد ې منکر دې. او بائع د دوې (دوه) زره ( درهمو ) مدعی دې. او مشتري دد ې منکر دې. نو مشتري چې د کومو زیاتي زر ( درهمو ) منکر دې. هغې باندې به قسم واجب وي. اود قسم خوړلو په صورت کې به هم دده قول معتبر وي.

| |
|---|
| وَإِنَّمَا يُرَاعَى مِنَ الْفَائِدَةِ مَا يُوجِبُهُ الْعَقْدُ، او فائده به هم هغه ملحوظ وي. کوم چې عقد واجبوي. وَفَائِدَةُ دَفْعِ زِيَادَةِ الثَّمَنِ لَيْسَتْ مِنْ مُوجِبَاتِهِ او د ثمن د زیاتوالی لرې کاوه فائده د عقد د موجباتو څخه نه ده. |

تشریح: دا عبارت د امام محمد او د امام شافعي رحمه الله د قول ﴿ وانه يفيد رفع زيـادة الـثمن ﴾ جواب دې. حاصل د جواب دادې. چه فائده هم هغه معتبر ده. کوم چې د موجباتِ عقد څخه وي. اود ثمن زیاتوالی لرې کاوه فائده د موجباتِ عقد څخه نه ده. بلکه دا فائده د بائع د قسم نه د انکار کاوه د موجباتو څخه ده. او چونکه قسم د موجباتِ عقد څخه نه ده. نود بائع انکار قسم به هم موجباتِ عقد څخه نه وي. او هر کله چې د بائع د قسم انکار د موجباتِ څخه نه ده. نو دده د قسم د انکار په وجه به هغه شئ نشي پریخودلې. کوم شئ چې د موجباتِ عقد څخه دې. یعنې مبیع باندې د مشتري ملکیت او قبضه. او هر کله چې دا ترک نکړې شوه. نو بائع څخه به قسم نشي اخستلې. بلکه صرف به مشتري څخه به قسم اخستلې شي.

| |
|---|
| وَهَذَا إِذَا كَانَ الثَّمَنُ دَيْنًا، اودا هغه وخت ده. کله چې ثمن دین وي. فَإِنْ كَانَ عَيْنًا نو که ثمن عین وي يَتَحَالَفَانِ نو دواړه به قسم خوري. لِأَنَّ الْمَبِيعَ فِي أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ قَائِمٌ ځکه چې احد الجانبین کې مبیع موجود دې. فَتَتَوَفَّرُ فَائِدَةُ الْفَسْخِ نود فسخ فائده به ښکاره کیږي. ثُمَّ يَرُدُّ مِثْلَ الْهَالِكِ بیا به د تلف شوې مثل اړخ ته ګرځولې شي. إِنْ كَانَ لَهُ مِثْلٌ که دهغې مثل وي. أَوْ قِيمَتَهُ إِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِثْلٌ یا قیمت ( طرف ) ته که د هغې مثل نه وي. |

تشریح: علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه ذکر شوې اختلاف هغه صورت کې دې. کله چې ثمن دین ( په ذمه ثابت ) وي. لکه دراهم او دنانیر. او که ثمن مال عین وي. یعنې دواړه عوضونه مال عین وي. او د یو تلف ( ضائع ) کیدلو نه روسته دواړو اختلاف اوکړو. نو بالاتفاق به دواړو نه خپل منځ کې قسم اخستلې شي. ځکه چې یو اړخ ته مبیع موجود دې. نو عقد بیع ختم نشو. او هر کله چې عقد بیع ختم نشو. نود تحالف نه روسته به د فسخ فائده نه ښکاره کیږي. په دې طریقه چې کوم عوض موجود دې. هغه به د هغې مالك اړخ ته واپس کولې شي. او کوم عوض چې تلف ( ضائع ) شو. که هغه د ذوات الامثال څخه وي. نود هغې مثل به واپس کولې شي. اوکه هغه د ذوات القیم څخه وي. نود هغې قیمت به واپس کولې شي.

### دوې (دوه) غلامانو کښې د یو غلام هلاکیدو نه روسته ثمن کښې اختلاف او د قسم حکم

| |
|---|
| قَالَ وَإِنْ هَلَكَ أَحَدُ الْعَبْدَيْنِ که په دوې (دوه) غلامانو کې یو هلاك شو. ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ بیا دواړو په ثمن کې اختلاف اوکړو. لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَتْرُكَ حِصَّةَ الْهَالِكِ مِنَ الثَّمَنِ [1] نود امام صاحب رحمه الله په نیز به دواړه قسمونه نه خوري. خودا چې بائع په دې خبره راضي شي. چه هغه به د هلاك شوې غلام برخه پریږدي (نو قسم به اخستلې شي) وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او جامع صغیر کې دي. الْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي مَعَ يَمِينِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ چې د ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مشتري قول به مع الیمین معتبر وي. إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْبَائِعُ خودا چې بائع دا خبره خوښه کړي. أَنْ يَأْخُذَ الْعَبْدَ الْحَيَّ چې هغه به ژوندې غلام اخلي. وَلَا شَيْءَ لَهُ. اود هلاك شوې غلام قیمت |

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (۲۰۳\۷) ومجمع الأنهر (۳۶۳\۳) والهندية (۳۳\٤) [الد]ختار (٤۷۹\٤) نقلاً عن القول الراجح (۱۷۶\۲)



| |
|---|
| کې به دده لپاره هیڅ نه وي. |

تشریح: صاحب د قدوري رحمه الله صورت د مسئلې بیانوي فرمائي. که یو سړي خپل دوې (دوه) غلامان د عقد واحد لاندې خرڅ کړل. او مشتري په دوې دواړو باندې قبضه اوکړله. بیا په دوې دواړو کې یو هلاك شو. ددې نه روسته بائع او مشتري د ثمن په مقدار کې اختلاف اوکړو. بائع اووئیل. چه ما دواړه غلامان د دوې (دوه) زره ( درهمو ) په عوض خرڅ کړي دي. اومشتري اووئیل. چه ما ستا نه دوې دواړه د زر ( درهمو ) په عوض اخستې دي. نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې صورت کې به تحالف نه کیږي. یعنې دواړو څخه به قسم نشي اخستلې. البته که بائع د هلاك شوې غلام د برخې (حصې) ثمن پریښودلو باندې راضي شو. نو په دې صورت کې به دواړو نه قسم اخستلې شي. او جامع صغیر کې هم دا مسئله په دې طریقه ذکر شوې ده. چه د ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مشتري قول به مع الیمین معتبر وي. خودا چې بائع په دې خبره باندې راضي شي. چه هغه به ژوندې غلام اخلي. اود هلاك شوې قیمت څخه به هغه لپاره هیڅ نه وي. د دواړو عبارتونو حاصل یو دې. صرف دومره توپیر دې. چه د قدوري په عبارت کې مستثنی منه عدم تحالف ( لم يتحالفا ) ده. اود جامع صغیر په عبارت کې مستثنی منه د مشتري یمین دې.

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: او ابویوسف رحمه الله فرمائي. يَتَحَالَفَانِ فِي الْحَيِّ وَيُفْسَخُ الْعَقْدُ فِي الْحَيِّ، چې د ژوندې غلام په اړه کې به عقد فسخ کولې شي. وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ. او د تلف شوې په قیمت کې به د مشتري قول معتبر وي. |

تشریح: حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. چه د ژوندې غلام په اړه کې به، بائع او مشتري دواړو نه قسم اخستلې شي. اود تحالف نه روسته به ژوندې غلام کې عقد بیع فسخ کولې شي. اود هلاك شوې غلام د ثمن په برخه کې به د مشتري قول مع الیمین معتبر وي.

| |
|---|
| وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمائي. يَتَحَالَفَانِ عَلَيْهِمَا چې ژوندي او هلاك شوې دواړو ( غلامانو ) باندې به د دواړو نه قسم اخستلې شي. وَيَرُدُّ الْحَيَّ او ژوندې غلام به واپس کولې شي. وَقِيمَةَ الْهَالِكِ ) اود هلاك شوې به قیمت واپس کولې شي. لِأَنَّ هَلَاكَ كُلِّ السِّلْعَةِ لَا يَمْنَعُ التَّحَالُفَ عِنْدَهُ ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نیز د پوره سامان هلاکیدل د تحالف نه مانع نه دی. فَهَلَاكُ الْبَعْضِ أَوْلَى. نود بعض هلاکیدل به په درجه اولی مانع نه وي. |

تشریح: او امام محمد رحمه الله فرمائي. چه ژوندي او هلاك شوې دواړو غلامانو باندې به د دواړو نه قسم اخستلې شي. اود عقد فسخ کاوه نه روسته به ژوندې غلام بائع اړخ ته واپس کولې شي. اود هلاك شوې غلام قیمت به واپس کولې شي.

د امام محمد رحمه الله دلیل دادې. چه د امام محمد رحمه الله په نیز د کُل مبیع هلاکیدل هم خپل منځ کې د قسم اخستلو نه مانع نه دی. نود بعض مبیع هلاکیدل به په درجه اولی د تحالف مانع نه وي. نو که د تحالف په وخت یو کس د قسم نه انکار اوکړو. نو په ده به د دوهم دعوه ثابتولې شي. اوکه دواړو قسم اوخوړلو. نود ژوندې غلام اود هلاك شوې قیمت به بائع اړخ ته واپس کولې شي. او مشتري به خپل ثمن واپس اخلي. په دې شرط چې هغه بائع ته ثمن ورکړې وي.

| |
|---|
| وَلِأَبِي يُوسُفَ د ابویوسف رحمه الله دلیل دادې. أَنَّ امْتِنَاعَ التَّحَالُفِ لِلْهَلَاكِ چې د تحالف ممتنع کیدل د مبیع هلاکیدلو په وجه دی. فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ. نو ددې په اندازه سره به مقدر وي. |

تشریح: د حضرت امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې. چه تحالف ( خپل منځ کې د قسم ) ممتنع کیدل په دې وجه دی. چه مبیع هلاك شوې دې. نو څومره قدرې چې ضائع شوې دې. هم هغه مقدار کې به تحالف ممتنع وي. نو ژوندې غلام کوم چې نه دې هلاك شوې. هغه کې به دواړو نه قسم اخستلې شي. او هلاك شوې غلام کې به

تحالف نه کيږي.بلکه دده په ثمن کي به د مشتري قول مع اليمين معتبر وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي.أَنَّ التَّحَالُفَ عَلَى خِلَافِ الْقِيَاسِ فِي حَالِ قِيَامِ السِّلْعَةِ چي د مبيع سامان موجود کيدلو په حالت کي تحالف خلاف قياس دي.وَهِيَ اسْمٌ لِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا اود مبيع سامان د خپلو پوره اجزاؤ نوم دي.فَلَا تَبْقَى السِّلْعَةُ بِفَوَاتِ بَعْضِهَا نود بعض په فوت کيدلو سره به د مبيع سامان پاته نه پاتي کيږي.وَلِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ التَّحَالُفُ فِي الْقَائِمِ إِلَّا عَلَى اعْتِبَارِ حِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ او دوهم دليل دادي.چه موجوده بيع کي تحالف ممکن نه دي. خو ددي د برخي (حصي) د ثمن اعتبار نه کاوه سره، فَلَا بُدَّ مِنَ الْقِسْمَةِ نو د د واړو په قيمت باندي د ثمن بتواره (تقسيم) ضروري ده.وَهِيَ تُعْرَفُ بِالْحَزْرِ وَالظَّنِّ حالانکه قيمت تخمينه (اټکل) او اندازي سره معلوميږي.فَيُؤَدِّي إِلَى التَّحَالُفِ مَعَ الْجَهْلِ نودا ثمن به د مجهول کيدلو باوجود د تحالف سبب وي.وَذَلِكَ لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَتْرُكَ حِصَّةَ الْهَالِكِ أَصْلًا اودا ناجائز دي.خودا چي بائع د هلاك شوي (غلام) برخه بالکل پريښولو باندي راضي شي .لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ الثَّمَنُ كُلُّهُ بِمُقَابَلَةِ الْقَائِمِ ځکه چي دغه وخت به پوره ثمن د موجود په مقابله کي وي.وَيَخْرُجُ الْهَالِكُ عَنِ الْعَقْدِ او هلاك شوي( غلام) به د عقد نه خارج شي.فَيَتَحَالَفَانِ نو دواړه به قسم خوري.

**تشريح:** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي.چه د مشتري د قبضي نه روسته تحالف خلاف قياس د حديث نه په هغه صورت کي ثابت دي.کله چي مبيع موجود وي.لکه څنګه چي وړاندي تير شوي دي.او مبيع دخپلو پوره اجزاؤ نوم دي.نود بعض اجزاؤ فوت کيدلو نه روسته مبيع پاته پاتي نشو.ځکه چي انتفاء د جزء انتفاء د کُل لره مستلزم ده.او چي مبيع پاته پاتي نشو.نود حديث وارديدلو محل هم پاته پاتي نشو.او هرکله چي د وارد شوي حديث محل پاته پاتي نشو.نود حديث مطابق به تحالف هم نه وي.اود مبيع په موجودګئ کي تحالف خلاف قياس ثابت دي.په دي وجه د هلاکيدلو صورت به په دي نشي قياس کولي.او تحالف به نشي واجبولي.بهرحال په دي صورت کي تحالف نشته.② دوهم دليل دادي.چه ژوندی غلام کي تحالف ممکن نه دي.خو په دي طريقه چي ثمن کي د هغه اعتبار هم اوکړي شي.او هر کله چي داسي ده.نود ژوندی غلام او هلاك شوی غلام دواړو په قيمت به ددي ثمن تقسيمولي شي.نود تحالف نه روسته به بائع اړخ ته ژوندي غلام واپس کولي شي.اود هلاك شوی غلام په برخه کي چي کوم ثمن راشي.هغه به ده ته ورکولي شي.خو قيمت په اندازه او اټکل سره معلوميږي.يقيني طور باندي نشي معلوميدلي.نود قيمت اټکل کيدلو په وجه به د هلاك شوی غلام برخه هم مجهول وي.او د ثمن مجهول کيدلو باوجود تحالف لازميږي.حالانکه دا ناجائز دي.البته که بائع په دي خبره راضي شو.چه د هلاك شوی غلام برخه بالکل پريږدي.نو دغه وخت به پوره ثمن د ژوندی غلام په مقابله کي شي.ګويا مبيع هم دا غلام وو.او هلاك شوي غلام د عقد نه خارج شو.او په دي طريقه به مبيع هم موجود وي.او ددي ثمن به هم معلوم وي.اود مبيع کيدلواو ثمن معلوميدلو په صورت کي چونکه تحالف جائز دي.په دي وجه به په دي صورت کي دواړو نه قسم اخستلي شي.

هَذَا تَخْرِيجُ بَعْضِ الْمَشَايِخِ اودا د بعض مشائخو تخريج دي.وَيَنْصَرِفُ الِاسْتِثْنَاءُ عِنْدَهُمْ إِلَى التَّحَالُفِ كَمَا ذَكَرْنَا او ددوی په نيز به استثناء تحالف اړخ ته ګرخولي شي.لکه څنګه چي موږ ذکر کړي دي.وَقَالُوا: او دوی وائي.إِنَّ الْمُرَادَ مِنْ قَوْلِهِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ چي جامع صغير کي د امام محمد رحمه الله د قول مراد دادي.يَأْخُذُ الْحَيَّ چي ژوندي غلام به اخلي.وَلَا شَيْءَ لَهُ،او دده لپاره به هيڅ نه وي.مَعْنَاهُ: لَا يَأْخُذُ مِنْ ثَمَنِ الْهَالِكِ شَيْئًا أَصْلًا ددي مطلب دادي.چه د تلف شوي په ثمن کي به هيڅ نه اخلي.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه موږ د امام ابوحنيفه رحمه الله د مذهب او دليل کوم تقرير کړي دي. هغه د بعض مشائخو د تخريج مطابق دي.ددي حضراتو په نيز استثناء «إلا ان يرضى البائع......الخ» تحالف اړخ



ته راجع دي.يعني ذکر شوي مسئله کي به تحالف نه کيږي.خو په دي صورت کي کيداي شي.کله چي بائع د هلاك شوي برخي (حصي) ثمن پريښولو باندي راضي شي.اودا مشائخ وائي.چه د جامع صغير د قول مراد دادي،،چه بائع ژوندي غلام واخلي.او هغه لپاره به هيڅ نه وي ،، مطلب دادي.چه د هلاك شوي د ثمن څخه به هيڅ نه اخلي.يعني د هغي په پريښولو باندي راضي شي.

### د څينبجنانخو نقطه نظر

وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ:فرمائي.او بعض مشائخو رحمهم الله فرمائيلي دي.يَأْخُذُ مِنْ ثَمَنِ الْهَالِكِ بِقَدْرِ مَا أَقَرَّ بِهِ الْمُشْتَرِي، چي د هلاك شوي د ثمن څخه به په دومره اندازه اخلي.د څومره قدري چي مشتري اقرار کړي دي.وَأَمَّا لَا يَأْخُذُ الزِّيَادَةَ. او زياتوالي به نه اخلي.وَعَلَى قَوْلِ هَؤُلَاءِ يَنْصَرِفُ الِاسْتِثْنَاءُ إِلَى يَمِينِ الْمُشْتَرِي او ددي مشائخو د قول په بناء باندي د يمين استثناء مشتري اړخ ته واپس کيږي.لَا إِلَى التَّحَالُفِ،تحالف اړخ ته نه واپس کيږي.لِأَنَّهُ لَمَّا أَخَذَ الْبَائِعُ بِقَوْلِ الْمُشْتَرِي ځکه چي کله بائع د مشتري په وينيلو باندي واخستلو.فَقَدْ صَدَّقَهُ نو هغه د مشتري د قول تصديق اوکړو.فَلَا يَحْلِفُ الْمُشْتَرِي،نو مشتري څخه به قسم نشي اخستلي.

**تشريح:** په تيره شوي مسئله کي د بعض مشائخو د تقرير مطابق وړاندي تقرير کړي شوي وو. د هغه تقرير مطابق به استثنا، تحالف ته راجح وي.خو نور بعض مشائخ فرمائي.چه بائع به ژوندي غلام اخلي. او د هلاك شوي غلام د برخي (حصي) په ثمن کي به صرف دومره اخلي.د کوم چي مشتري اقرار کړي دي.اود اقرار کړي شوي رقم نه چي کوم زياتي دي.هغه به بائع نه اخلي.ددي حضرات مشائخو د قول په بنا (بنياد) باندي د يمين استثناء مشتري اړخ ته واپس کيږي.او تحالف اړخ ته به نه واپس کيږي.اود متن د عبارت مطلب به دا وي.چه د ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د بائع او مشتري دواړو نه قسم نشي اخستلي.بلکه د مشتري قول به مع اليمين معتبر وي.خوکه بائع دا خبره اوغواړي.چه ژوندي غلام واخلي.اود هلاك شوي غلام د برخي (حصي) په ثمن کي د مشتري د اقرار نه زياتي شئ وانخلي.نو دغه وخت به مشتري باندي يمين واجب نه وي.ځکه چي هرکله بائع د مشتري د قول او اقرار مطابق واخستلو.نو ګويا بائع د مشتري د قول تصديق اوکړو.او هرکله چي بائع د مشتري د قول تصديق اوکړو.نو د مشتري نه د قسم اخستلو هيڅ اړتيا نشته.ځکه چي مشتري نه قسم هغه وخت اخستلي شي.کله چي دي د بائع د دعوه منکر وي.حالانکه دلته کي بائع د مشتري د دعوه تصديق کړي دي.نو مشتري د بائع د دعوه منکر پاتي نشو.

ثُمَّ تَفْسِيرُ التَّحَالُفِ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ مَا بَيَّنَّاهُ فِي الْقَائِمِ. بيا د امام محمد رحمه الله په قول باندي د تحالف تفسير هغه دي.کوم چي موږ د موجوده غلام په اړه کي بيان کړي دي.وَإِذَا اخْتَلَفَا او کله چي بائع او مشتري دواړو قسم اوخوړلو. وَلَمْ يَتَّفِقَا عَلَى شَيْءٍ اود ثمن په هيڅ مقدار باندي متفق نشو.فَادَّعَى أَحَدُهُمَا الْفَسْخَ أَوْ كِلَاهُمَا بيا دوی دواړو کي يو يا دواړو د فسخ دعوه اوکړله.يُفْسَخُ الْعَقْدُ بَيْنَهُمَا نو ددوی دواړو په منځ کي چي کوم عقد دي.فسخ کولي به شي.وَيَأْمُرُ الْقَاضِي الْمُشْتَرِيَ بِرَدِّ الْبَاقِي وَقِيمَةِ الْهَالِكِ. او قاضي به مشتري ته پاته غلام اود هلاك شوی قيمت واپس کاوه حکم کوي.

**تشريح:** د متن د مسئلي د پوره تفصيل نه روسته په «ثم تفسير التحالف.....الخ» سره علامه مرغيناني رحمه الله د تحالف وضاحت کول غواړي.فرمائي چي د امام محمد رحمه الله د قول په بناء باندي د تحالف تفسيرهم هغه دي.کوم چي موږ يو څو صفحات وړاندي بيان کړي دي.چه بائع به داسي قسم خوري.چه په خدائي قسم ما دا مبيع د زرو (درهمو) په عوض نه دي خرڅ کړي.او مشتري به داسي قسم خوري.چه په خدائي قسم ما دا مبيع د دوو (دوه) زره (درهمو) په عوض نه دي اخستي.نو هرکله چي په ذکر شوي مسئله کي تحالف وي.نود بائع اومشتري دواړو څخه به داسي قسم اخستلي شي.بهرحال هرکله چي دثمن مقدار باندي دواړه متفق نشي. او دواړه قسم اوخوري.نوکه په دوی دواړو کي يو يا دواړو د فسخ دعوه اوکړله.نو ددوی دواړو

په منځ کي به عقد بيع فسخ کولی شي.او قاضي به مشتري ته حکم ورکوي.چه ژوندی غلام واپس کړي.اود هلاك شوي غلام قيمت واپس کړي.

**وَاخْتَلَفُوا فِي تَفْسِيرِهِ عَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى**،اود ابويوسف رحمه الله په قول باندي د تحالف په تفسير کي د مشائخو اختلاف دي. **وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يَحْلِفُ الْمُشْتَرِي بِاللَّهِ مَا اشْتَرَيْتُهُمَا بِمَا يَدَّعِيهِ الْبَائِعُ**،او صحيح دا ده.چه مشتري نه داسي قسم واخستلې شي.چه په خداي قسم ما دوی دواړه د دومره مقدار ثمن په عوض نه دي اخستي.د کوم چي بائع مدعي دي. **فَإِنْ نَكَلَ** نو که مشتري د قسم نه انکار اوکړو. **لَزِمَهُ دَعْوَى الْبَائِعِ**،نو په ده به د بائع دعوه لازمه وی. **وَإِنْ حَلَفَ** اوکه قسم ئې اوخوړلو. **يَحْلِفُ الْبَائِعُ بِاللَّهِ مَا بِعْتُهُمَا بِالثَّمَنِ الَّذِي يَدَّعِيهِ الْمُشْتَرِي**،نو بائع څخه به قسم اخستلې شي.چه په خدائې قسم ما دوی دواړه د هغه ثمن په عوض نه دي خرخ کړي.د کوم چي مشتري مدعي دي. **فَإِنْ نَكَلَ** نو که بائع د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. **لَزِمَهُ دَعْوَى الْمُشْتَرِي**،نود مشتري دعوه به په ده باندي لازم وی. **وَإِنْ حَلَفَا** او که بائع قسم اوخوړلو. **يَفْسَخَانِ الْعَقْدَ فِي الْقَائِمِ** نو دوی دواړه به موجوده غلام کي بيع فسخ کړي. **وَتَسْقُطُ حِصَّتُهُ مِنَ الثَّمَنِ** او دده ( د ژوندی غلام) د برخي (حصي) ثمن به د مشتري د ذمه نه ساقط شي. **وَيَلْزَمُ الْمُشْتَرِي حِصَّةَ الْهَالِكِ** او مشتري باندي به د هلاك شوي ( غلام) د ثمن برخه لازم وی.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.چه د ابويوسف رحمه الله د قول په بناء باندي د تحالف په تفسير کي د مشائخو اختلاف دي.خو اصح قول دادې.چه مشتري څخه به داسي قسم اخستلې شي.چه په خدائې قسم ما دا دواړه غلامان په دومره ثمن نه دي اخستي.دکوم چي بائع مدعي دي.نو که مشتري د قسم انکار اوکړو.نو مشتري باندي به هغه لازم وی.دکوم چي بائع دعوه کوی.اوکه مشتري قسم اوخوړلو.نو بيا به بائع نه داسي قسم اخستلې شي.چه په خدائې قسم دا دواړه غلامان ما دهغه ثمن په عوض نه دي خرخ کړي.د کوم چي مشتري مدعي دي.نوکه بائع د قسم نه انکار اوکړو.نو په ده به د مشتري دعوه لازم وی.يعني مشتري چي د کوم مقدار دعوه کړې ده.بائع لپاره هم هغه مقدار وی.اوکه بائع هم قسم اوخوړلو.نو په ژوندي غلام کي دې دواړه بيع فسخ کړي.او دده د برخي (حصي) ثمن به د مشتري د ذمې نه ساقط شي.اود هلاك شوي غلام د برخي (حصي) ثمن به د مشتري په ذمه لازم وی.

**وَيُعْتَبَرُ قِيمَتُهُمَا فِي الِانْقِسَامِ يَوْمَ الْقَبْضِ** او په برخه راويستلو کي به ددوی دواړو (غلامانو) د قبضې د ورځي قيمت معتبر وی. (**وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ يَوْمَ الْقَبْضِ** اوکه بائع او مشتري د قبضې د ورځي د هلاك شوي (غلام) په قيمت کي اختلاف اوکړو. **فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ**،نود بائع قول به معتبر وی. **وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ**. او په دوی دواړو کي چي کوم يو کس بينه پيش کړل.د هغه بينه به قبلولې شي. **وَإِنْ أَقَامَاهَا** اوکه دواړو بينه قائم کړل **فَبَيِّنَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى**) نود بائع بينه به اولى وی.

**تشريح:** اوس پاتې شوه داخبره چي د ژوندی غلام او د هلاك شوي غلام د برخي (حصي) د ثمن راوښکلو لپاره د دواړو غلامانو دکومې ورځي قيمت معتبر وی.نو په دې اړه کي علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.چه په کومه ورځ مشتري غلامانو باندي قبضه کړې وه.د هغه ورځي قيمت به معتبر وی.اود هلاك شوي غلام د قبضې د ورځي په قيمت کي بائع او مشتري اختلاف اوکړو.اود يو سره هم بينه نه وی.نود بائع قول به مع اليمين معتبر وی.خکه چي د کوم ثمن مشتري اقرار کوی.هغې باندي خو دواړه متفق دي.خو ددې نه روسته مشتري د هلاك شوي غلام قيمت ښائي.د هغه د برخي (حصي) په ثمن کي د اقرار نه د زيات ساقطولو دعوه کوی.او بائع ددې دعوه منکر دي.اود منکر قول مع اليمين معتبر وی.نود بائع قول به مع اليمين معتبر وی.اوکه په دواړو کي يو کس پخپله دعوه باندي بينه قائم کړل.نود هغه بينه به قبول وی.خکه چي بينه دعوه ثابتوی.اوکه دواړه پخپله خپله دعوه باندي بينه قائم کړل.نود بائع بينه به اولى (او راجح) وی.خکه چي د هلاك شوي غلام د زيات قيمت ثابتولو په وجه د بائع بينه زيات مثبت دی.اوکوم بينه چي زيات مثبت



وی.هم هغه قبلولې شي.نود بائع بينه قبلول به اولى وی.

**وَهُوَ قِيَاسُ مَا ذُكِرَ فِي بُيُوعِ الْأَصْلِ** اودا د هغه مسئلې د قياس مطابق ده.کومه چي د مبسوط په ،، کتاب البيوع ،، کي ذکر کړې شوې ده.(**اشْتَرَى عَبْدَيْنِ** چي يوسړی دوې (دوه) غلامان واخستل. **وَقَبَضَهُمَا** دواړو باندي ئې قبضه اوکړله. **ثُمَّ رَدَّ أَحَدَهُمَا بِالْعَيْبِ** بيا ئې دوی دواړو کي يو د عيب په وجه واپس کړو. **وَهَلَكَ الْآخَرُ عِنْدَهُ** او دوهم دده سره هلاك شو. **يَجِبُ عَلَيْهِ ثَمَنُ مَا هَلَكَ عِنْدَهُ** نو کوم چي دده سره هلاك شوې دې.د هغه ( غلام) ثمن به واجب وی. **وَيَسْقُطُ عَنْهُ ثَمَنُ مَا رَدَّهُ** اوکوم ( غلام) ئې چي ( د عيب په وجه) واپس کړې وو.د هغه د برخي (حصي) ثمن به ساقط وی. **وَيَنْقَسِمُ الثَّمَنُ عَلَى قِيمَتِهِمَا**. او ثمن به ددوی دواړو په قيمت باندي تقسيمولې شي. **فَإِنِ اخْتَلَفَا فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ** بيا که د هلاك شوي په قيمت کي دواړو اختلاف اوکړو. **فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ**)نود بائع قول به معتبر وی. **لِأَنَّ الثَّمَنَ قَدْ وَجَبَ بِاتِّفَاقِهِمَا** خکه چي ثمن ددوی دواړو په اتفاق سره واجب شوې وو. **ثُمَّ الْمُشْتَرِي يَدَّعِي زِيَادَةَ السُّقُوطِ بِنُقْصَانِ قِيمَةِ الْهَالِكِ** نو مشتري د هلاك شوي د قيمت کيدلو په وجه د زساتې ساقطيدلو دعوه کوی. **وَالْبَائِعُ يُنْكِرُهُ** او بائع ددې منکر دي. **وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ** او قول د منکر معتبر وی. (**وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ** اوکه دواړو بينه قائم کړل. **فَبَيِّنَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى**)نود بائع بينه به اولى وی. **لِأَنَّهَا أَكْثَرُ إِثْبَاتًا ظَاهِرًا** خکه چي د بائع بينه په ښکاره زيات ثابتونکی دی. **لِإِثْبَاتِهَا الزِّيَادَةَ فِي قِيمَةِ الْهَالِكِ** خکه چي هغه د هلاك شوي غلام قيمت زياتوالې ثابتوی.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.چه د تحالف د تفسير په سلسله کي د امام ابويوسف رحمه الله قول، او په دې باندي بيان کړې شوی تفريعات، واړه د هغه مسئلې د قياس مطابق دی.کومه مسئله چي مبسوط کي ذکر ده.په مبسوط کي ذکرشوې مسئله داده.چه يو سړي دوې (دوه) غلامان واخستل.او په دوی دواړو باندي ئې قبضه اوکړله.بيا ئې دوی کي يو غلام د عيب په وجه واپس کړو.او يو غلام مشتري سره هلاك شو.نو مشتري باندي به د هلاك شوي غلام د برخي (حصي) ثمن واجب وی.اود واپس کړې شوی غلام د برخي (حصي) ثمن به دده د ذمې نه ساقطولې شي.اودا ثمن به ددې دواړو غلامانو په هغه قيمت باندي اندازه کولې (او حسابولې) شي.کوم قيمت چي د قبضې په ورځ وو.بيا که د هلاك شوي غلام قيمت کي دواړو اختلاف اوکړو.يعني مشتري کم قيمت اوخودلو.او بائع زيات اوخودلو.او دواړو سره بينه نه وی.نود بائع قول به مع اليمين معتبر وی.نو دلته کي به هم د منکر يعني د بائع قول معتبر وی.اوکه دواړو پخپله خپله دعوه باندي بينه قائم کړل.نود بائع بينه به اولى وی.خکه چي د بائع بينه د هلاك شوي غلام قيمت زيات ثابتوی.په دې وجه د بائع بينه په ښکاره زيات مثبت شو.اود کوم کس بينه چي زيات ثابتوی.هم د هغه بينه قبلولې شي.نو د بائع بينه به قبلولې شي.

**وَهَذَا الْفِقْهُ. وَهُوَ أَنَّ فِي الْأَيْمَانِ تُعْتَبَرُ الْحَقِيقَةُ** اودا فقه ده.چه قسمونو کي د حقيقت حال اعتبار کيږي. **لِأَنَّهَا تَتَوَجَّهُ عَلَى أَحَدِ الْعَاقِدَيْنِ** خکه چي قسم احد العاقدين اړخ ته متوجه کيږي. **وَهُمَا يَعْرِفَانِ حَقِيقَةَ الْحَالِ** او هغوی دواړه حقيقت حال پيژني. **فَبُنِيَ الْأَمْرُ عَلَيْهَا** نود قسم معامله به په حقيقت حال باندي مبني وی. **وَالْبَائِعُ مُنْكِرٌ حَقِيقَةً** او بائع د حقيقت منکر دي. **فَلِهَذَا كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ**،نو دده قول به معتبر وی. **وَفِي الْبَيِّنَاتِ يُعْتَبَرُ الظَّاهِرُ** او په بيناتو کي د ښکاره ( حال) اعتبار کولې شي. **لِأَنَّ الشَّاهِدَيْنِ لَا يَعْلَمَانِ حَقِيقَةَ الْحَالِ** خکه چي ګواهان حقيقت حال نه خبر نه وی. **فَاعْتُبِرَ الظَّاهِرُ فِي حَقِّهِمَا** نو ددوی دواړو په حق کي به ښکاره ( حال) معتبر وی. **وَالْبَائِعُ مُدَّعٍ ظَاهِرًا** او په ښکاره بائع مدعي دي. **فَلِهَذَا تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ أَيْضًا** نو بينه به هم دده قبلولې شي. **وَتَتَرَجَّحُ بِالزِّيَادَةِ الظَّاهِرَةِ عَلَى مَا مَرَّ**، اود ښکاره زياتوالي په وجه به د بائع بينه راجح وی.لکه څنګه چي تير شوی دی.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.چه د مبسوط په ذکر شوې مسئله کي د بينه نه کيدلو په صورت کي قسم هم د بائع معتبر دی.اود دواړو د بينه پيش کاوه په صورت کي بينه هم د بائع معتبر دی.په دې کي فقهي خبره يعني ( نکته او) راز دادې.چه قسمونو کي حقيقت حال معتبر وی.اودليل ددې دا دې.چه قسم

احد المتعاقدين اړخ ته متوجه کیږي.نه وکیل اړخ ته متوجه کیږي.او نه نائب اړخ ته متوجه کیږي.او عاقدین د حقیقت حال نه خبر وی.ځکه چې عقد ددوی دواړو خپل ذاتی فعل دی.او انسان د خپل فعل نه بنه واقف او خبردار وی.او هرکله چې داسې ده.نود قسم معامله به په حقیقت حال باندې مبنی وی.او بائع چونکه د ثمن د زیاتوالی د سقوط منکر دی.په دې وجه هغه د حقیقت منکر شو.اود منکر قول مع الیمین قبلیږي.په دې وجه به د بائع قول مع الیمین معتبر وی.او ګواهانو کې د ښکاره حال اعتبار کیږي.ځکه چې ګواهان د حقیقت حال نه خبر نه وی.او ګواهان ځکه د حقیقت حال نه خبر نه وی.چه هغوی د بل د فعل ګواهی ورکوی.د خپل فعل ګواهی نه ورکوی.او انسان د بل د فعل د حقیقت نه نه خبریږي.نود ګواهانو په حق کې به د ښکاره حال اعتبار کیږي.او بائع چونکه د ښکاره حال یعنی د ثمن د زیاتوالی مدعی دی.ځکه به دهغه بینه قبول وی.

| |
|---|
| وَهٰذَا يُبَيِّنُ لَكَ مَعْنٰى مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رحمه الله اودا ستا لپاره د امام ابویوسف رحمه الله هغه معنی کومه چې موږ ذکرکړې ده. ښکاره کوی. |

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی.چه په تیره شوې مسئله کې ذکر شوی زیادت کې د بائع بینه د ښکاره حال په وجه د مشتری د بینه نه راجح دی. علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی.چه مبسوط کې څه ذکر شوی دی.د امام ابویوسف رحمه الله د قول بنا (بنیاد) هم په هغې دې.او هدایه کې مذکوره مسئله هم د مبسوط په دغه مسئله باندې قیاس کولې شی.

**په اخستې شوې مقبوضه وینځه کښې اقاله کولو کښې په ثمن کښې اختلاف او د قسم حکم**

| |
|---|
| قَالَ (وَمَنِ اشْتَرٰى جَارِيَةً که یوسړی یوه وینځه واخستله. وَقَبَضَهَا په هغې ئې قبضه اوکړله. ثُمَّ تَقَايَلَا بیا دواړو د مبیع اقاله اوکړله. ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ بیا دواړو په ثمن کې اختلاف اوکړو. فَإِنَّهُمَا يَتَحَالَفَانِ نو دوی دواړه به قسم خوری. وَيَعُودُ الْبَيْعُ الْأَوَّلُ) او بیع اول به واپس کیږي. |

**تشریح:** مسئله داده.که یوکس یوه وینځه واخستله.ثمن ئې اداکړو.او په وینځه باندې ئې قبضه اوکړله.بیا بائع او مشتری دواړو اقاله اوکړله.یعنی بیع ئې فسخ کړله.خود اقاله نه روسته بائع په مبیع باندې قبضه اونکړله.بلکه د ثمن په مقدار کې اختلاف شو.مشتری اوونیل چه ثمن زر ( درهم) دی.نو په تا باندې زر( درهم) واپس کول لازم دی.نو په داسې صورت کې به بائع او مشتری دواړو نه قسم اخستلې شی. اود تحالف نه روسته به اقاله ختمولې شی.او رومبئ بیع به واپس کیږي.تردې چې د بائع حق به هغه ثمن سره متعلق کیږي.کوم ثمن چې مشتری بائع ته ورکړې وو.اود مشتری حق به هغه مبیع سره متعلق کیږي.کوم مبیع چې دمشتری په قبضه کې دی.

| |
|---|
| وَنَحْنُ مَا أَثْبَتْنَا التَّحَالُفَ فِيهِ بِالنَّصِّ او ددې اقاله په صورت کې تحالف موږ د نص په ذریعه نه دې ثابت کړې. لِأَنَّهُ وَرَدَ فِي الْبَيْعِ الْمُطْلَقِ ځکه چې نص په بیع مطلق کې وارد شوې دې. وَالْإِقَالَةُ فَسْخٌ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ او اقاله د عاقدینو په حق کې فسخ د بیع ده. وَإِنَّمَا أَثْبَتْنَاهُ بِالْقِيَاسِ بلکه موږ په اقاله کې تحالف د قیاس نه ثابت کړې دې. لِأَنَّ الْمَسْأَلَةَ مَفْرُوضَةٌ قَبْلَ الْقَبْضِ ځکه چې مسئله د قبضه نه وړاندې فرض کړې شوې ده. وَالْقِيَاسُ يُوَافِقُهُ عَلٰى مَا مَرَّ او قیاس ددې موافق دې.لکه څنګه چې تیر شو. |

**تشریح:** خو په دې باندې یو سوال کیږي.چه نص یعنی حدیث ﴿إذا اختلف المتبايعان والسلعة قائمة تحالفا وترادا﴾ د تحالف په سلسله کې وارد شوې دې.خودا نص اقاله ته ګډ نه دې.بلکه بیع مطلق ته ګډ دې.او هرکله چې داسې ده.نو اقاله کې به تحالف څنګه جاری کیږي ؟

خواب: ددې خواب دادې.چه په موږ په اقاله کې تحالف په نص سره ثابت کړې دې.ځکه چې نص د بیع مطلق یعنی د بیع من کل وجه په اړه کې وارد شوې دې.او اقاله من کل وجه بیع نه ده.ځکه چې د اقاله د



غیرعاقدین په حق کې اګرچه بیع جدید ده.خو د عاقدینو په حق کې نسخ د بیع ده.بهرحال اقاله کې موږ د نص په ذریعه تحالف ثابت کړې دې.ځکه چې مسئله داسې فرض کړې شوې ده.چه د اقاله نه روسته بائع مبیع باندې قبضه نه ده کړې.په اول د باب کې تیر شوی دی.چه تحالف د قبضه نه وړاندې د قیاس مطابق دې.نو هرکله چې بیع مطلق کې د قبضه نه وړاندې تحالف د قیاس مطابق دې.نو په دې باندې قیاس کاوه سره اقاله کې هم قبضه نه وړاندې تحالف ثابت کړې شو.

| |
|---|
| وَلِهٰذَا نَقِيسُ الْإِجَارَةَ عَلَى الْبَيْعِ قَبْلَ الْقَبْضِ په دې وجه موږ اجاره د قبضه نه وړاندې بیع باندې قیاس کوو. وَالْوَارِثَ عَلَى الْعَاقِدِ او وارث په عاقد باندې، وَالْقِيمَةَ عَلَى الْعَيْنِ فِيمَا إِذَا اسْتَهْلَكَهُ فِي يَدِ الْبَائِعِ غَيْرُ الْمُشْتَرِي. او قیمت په مال عین باندې قیاس کوو.په هغه صورت کې کله چې مبیع د مشتری نه علاوه د بائع په قبضه کې هلاك کړې وی. |

**تشریح:** هم دا وجه ده چې موږ اجاره قبل القبض په بیع باندې قیاس کوو.یعنی که موجر( اجاره باندې ورکونکې) او مستاجر د اجرت په مقدار کې اختلاف اوکړو.او مستاجر معقود علیه باندې قبضه اونکړله.نو په بیع قبل القبض باندې قیاس کاوه سره په دې کې هم تحالف ثابت کړې شو.

؟ او وارث عاقد باندې قیاس کولې شی.یعنی کله چې د بائع او د مشتری وارثانو په ثمن کې اختلاف اوکړو.او مبیع باندې د مشتری وارث قبضه اونکړله.نو ددوی دواړو په منځ کې به هم د قیاس په وجه تحالف جاری کیږي.

؟ او دغه ډول قیمت په مال عین باندې قیاس شوې دې.یعنی کله چې د بائع په قبضه کې مبیع د مشتری نه علاوه هلاك کړو.او غیر مشتری ددې د قیمت ضامن شو.نودا قیمت به د هلاك شوی مال( مبیع) قائم مقام وی.که د مشتری په دې قیمت قبضه کاوه نه وړاندې د هلاك شوی مبیع د ثمن په مقدار کې اختلاف اوشو.نو په دې کې به هم تحالف جاری کیږي.اودا په تحالف باندې قیاس کړې شوې دې.کوم چې د مبیع په موجودګئ کې جاری کولې شی.

| |
|---|
| قَالَ (وَلَوْ قَبَضَ الْبَائِعُ الْمَبِيعَ بَعْدَ الْإِقَالَةِ او که د اقاله نه روسته بائع په مبیع باندې قبضه اوکړله. فَلَا تَحَالُفَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ[1] نود ابوحنیفه او ابویوسف رحمهما الله په نیز به تحالف نه وی. خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ) د امام محمد رحمه الله اختلاف دې. لِأَنَّهُ يَرَى النَّصَّ مَعْلُولًا بَعْدَ الْقَبْضِ أَيْضًا ځکه چې امام محمد رحمه الله د قبضې نه روسته هم نص معلول منلې دې. |

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی.که د اقالې نه روسته بائع په مبیع باندې قبضه اوکړله.نود شیخینو رحمهما الله په نیز به تحالف نه جاری کیږي.البته د امام محمد رحمه الله په نیز جاری کیږي.امام محمد رحمه الله فرمانی.چه نص یعنی ﴿إذا اختلف المتبايعان والسلعة قائمة تحالفا وترادا﴾ په انکار سره معلول دې.یعنی د تحالف علت عاقدینو کې د هر یو د بل د عقد نه انکار کول دی.اودا علت په دواړو صورتونوکې موجود دې.که مبیع باندې مشتری قبضه کړې وی.اوکه قبضه ئې نه وی کړې.نو هرکله چې علت دواړو اړخ ته موجود دې.نو دواړو صورتونو کې به تحالف جاری کیږي.

**په بیع سلم کښې د اقالې نه روسته په ثمن کښې اختلاف**

| |
|---|
| قَالَ (وَمَنْ أَسْلَمَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فِي كُرِّ حِنْطَةٍ که یو سړی په یو کُر غنمو کې لس درهمه د بیع سلم په طور اداکړل. ثُمَّ تَقَايَلَا بیا دواړو اقاله اوکړله. ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ بیا ثمن کې اختلاف شو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ نود مسلم الیه قول به قبول وی. وَلَا يَعُودُ السَّلَمُ) او بیع سلم به نه واپس کیږي. لِأَنَّ الْإِقَالَةَ فِي بَابِ السَّلَمِ لَا تَحْتَمِلُ |

[1] القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في الدرالمنتقى (۳۶۵\۳) والهندية(۳۴\۴) نقلاً عن القول الراجح (۱۷۷\۲)

النَّقْضَ خکه چې باب سلم کې اقاله د نقض احتمال نه لري. لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ فَلَا يَعُودُ السَّلَمُ، خکه چې دا د اسقاط د قبیلې څخه دي. نو سلم به نه واپس کیږي.

تشریح: صورت د مسئلې دادې. که یو سړي په یو کُر غنمو کې دلس درهمو په عوض عقد سلم اوکړو. او رب السلم لس درهمه مسلم الیه ته ورکړل. بیا ئې اختلاف اوکړو. مسلم الیه اووئیل. چه راس المال پنځه درهمه وو. او رب السلم اووئیل. چې لس درهمه وو. نو په دې صورت کې به د مسلم الیه قول مع الیمین معتبر وی. خکه چې رب السلم د زیاتی پنځو درهمو مدعی دې. او مسلم الیه ددې منکر دې. او بینه موجود نه دی. نود منکر یعنی مسلم الیه قول به مع الیمین معتبر وی. نه به دلته تحالف کیږی. او نه به بیع سلم واپس کیږی. خکه چې بیع سلم کې اقاله د نقض او ماتیدلو احتمال نه لري. خکه چې اقاله د هغه مسلم فیه ساقطولو نوم دې. کوم چې اوس هم د مسلم الیه په ذمه دین دې. نو هرکله چې د اقاله په ذریعه مسلم فیه ساقط کړې شو. نو سلم څنګه واپس کیدای شی. خکه چې سلم لپاره د مسلم الیه په ذمه مسلم فیه کیدل ضروری دی.

بِخِلَافِ الْإِقَالَةِ فِي الْبَيْعِ په خلاف په بیع کې د اقاله کولو، أَلَا تَرَى آیا نه ګورې. أَنَّ رَأْسَ مَالِ السَّلَمِ لَوْ كَانَ عَرَضًا که د سلم راس المال څه سامان وی. فَرَدَّهُ بِالْعَيْبِ بیا ئې دا دخه عیب په وجه واپس کړو. وَهَلَكَ قَبْلَ التَّسْلِيمِ إِلَى رَبِّ السَّلَمِ او رب السلم ته د ور کاوه نه وړاندې د مسلم الیه په قبضه کې هلاك شو. لَا يَعُودُ السَّلَمُ نو سلم به نه واپس کیږی. وَلَوْ كَانَ ذَلِكَ فِي بَيْعِ الْعَيْنِ او که دا معامله په بیع عین کې وی. يَعُودُ الْبَيْعُ نو بیع واپس کیږی. دَلَّ عَلَى الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا نو دا په دې دواړو کې د توپیر دلیل دې.

تشریح: ددې په خلاف بیع کې اقاله، خکه چې بیع کې مبیع عین وی. نود بیع اقاله به فسخ کیدلو سره مبیع مشتری ته واپس راتلې شی. او کله چې مبیع مشتری ته واپس راشی. نو بیع واپس راغله. ددې په وضاحت کې فرمائی. که د سلم راس المال سامان وی. او بیا دعیب په وجه قاضی دا رب السلم اړخ ته واپس کاوه فیصله کړې وی. خو رب السلم ته د ور کاوه نه وړاندې هغه سامان د مسلم الیه په قبضه کې هلاك شو. نو سلم به نه واپس کیږی. اودا معامله په مبیع مطلق کې کیږی. نو بیع واپس راتلې شی. نود سلم او بیع په منځ کې هم دا توپیر دې.

## د ښځې میړه په منځ کښې په مهر کښې اختلاف

قَالَ (وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي الْمَهْرِ او که ښځې او میړه په مهر کې اختلاف اوکړو. فَادَّعَى الزَّوْجُ بیا میړه دعوه اوکړله. أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا بِأَلْفٍ چې ما ددې سره په زر( درهمو) باندې نکاح کړې وه. وَقَالَتْ او ښځې اووئیل. تَزَوَّجَنِي بِأَلْفَيْنِ چې تا ما سره په دوې (دوه) زره ( درهمو) نکاح کړې وه. فَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ) نو کوم کس چې بینه قائم کړل. د هغه بینه به قبول وی. لِأَنَّهُ نَوَّرَ دَعْوَاهُ بِالْحُجَّةِ خکه چې هغه خپله دعوه په دلیل سره منور کړې ده. (...) وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ بیا که ښځې میړه دواړو بینه قائم کړل. فَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمَرْأَةِ نود ښځې بینه به قبول وی. لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الزِّيَادَةَ، خکه چې د ښځې بینه زیادت ثابتوی. مَعْنَاهُ ددې مطلب دادې. إِذَا كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَقَلَّ مِمَّا ادَّعَتْهُ چې کله د ښځې مهر مثل د ښځې د دعوه نه کم وی.

تشریح: صورت د مسئلې دادې. که ښځې او میړه د مهر په مقدار کې اختلاف اوکړو. میړه دعوه اوکړله. چه ما ددې ښځې سره د زر ( درهمو) په عوض نکاح کړې ده. او ښځې دعوه اوکړله. چه ده زما سره د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض نکاح کړې ده. نو په دواړو کې چې کوم یو کس بینه قائم کړل. د هغه بینه به قبول وی. خکه چې هغه خپله دعوه بینه سره ثابت کړله. که ښځې بینه قائم کړل. نود هغې بینه قبلول بالکل ښکاره دی. خکه چې هغه د زیاتوالی مدعیه ده. اود مدعی بینه قبلولې شی. نو ددې بینه به قبول وی. خود میړه بینه قبلولو کې څه قدرې اشکال دې. خکه چې میړه د زیادت منکر دې. نو په ده باندې قسم واجبیدل پکار دی. بینه



واجبیدل پکار نه دی. خو ددې باوجود که ده بینه پیش کړل. نو خکه به قبلیږی. چه دې صورةً مدعی دې. اود بینه قبلیدلو لپاره دومره کافی ده. اوکه ښځې او میړه دواړو خپل خپل بینه قائم کړل. نود ښځې بینه به قبول وی. خکه چې د ښځې بینه د مهر زیادت ثابتوی. خود ښځې بینه به هغه وخت قبلیږی. کله چې مهر مثل دهغې نه کم وی. دکوم چې ښځه دعوه کوی. ګنی که مهر مثل د هغې برابر وی. دکوم چې ښځه دعوه کوی. یا هغې نه زیات وی. نو په دې دواړو صورتونوکې به د میړه بینه قبول وی.

(وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ او که دواړو سره بینه نه وی. تَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دواړو قسم اخستلې شی. وَلَا يُفْسَخُ النِّكَاحُ) او نکاح به نشی فسخ کیدلې. لِأَنَّ أَثَرَ التَّحَالُفِ فِي انْعِدَامِ التَّسْمِيَةِ خکه چې د تحالف اثر په تسمیه معدوم کیدلو کې کیږی. وَأَنَّهُ لَا يُخِلُّ بِصِحَّةِ النِّكَاحِ او د نکاح د صحت لپاره محل نه دې. لِأَنَّ الْمَهْرَ تَابِعٌ فِيهِ، خکه چې مهر په نکاح کې تابع وی. بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع، لِأَنَّ عَدَمَ التَّسْمِيَةِ يُفْسِدُهُ عَلَى مَا مَرَّ خکه چې عدم تسمیه دا فاسد کوی. لکه چې تیر شوی دی. فَيُفْسَخُ، نو بیع به فسخ کولې شی. (وَلَكِنْ يُحَكَّمُ مَهْرُ الْمِثْلِ خو مهر مثل به حکم( او فیصل) ګرځولې شی. فَإِنْ كَانَ مِثْلَ مَا اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ نو که مهر مثل دومره وی. د څومره چې میړه اقرار کړې دې. أَوْ أَقَلَّ یا ددې نه کم وی. قُضِيَ بِمَا قَالَ الزَّوْجُ) نو دهغې فیصله به کولې شی. کوم چې میړه وئیلی دی. لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهُ خکه چې ښکاره حال ددې شاهد دې.

تشریح: او که ښځه او میړه دواړه د بینه قائمولو نه عاجز شو. نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دواړو نه قسم اخستلې شی. خو نکاح به نشی فسخ کولې. خکه چې د تحالف اثر به دا وی. چه د مهر په سلسله کې د دواړو دعوه معدوم شی. او داسې شی. لکه چې د مهر ذکر ئې نه وی کړې. اود مهر ذکر نه کول د نکاح د صحت لپاره محل( خلل) نه واقع کیږی. خکه چې مهر په نکاح کې تابع وی. نو په دې تحالف سره د مهر تسمیه معدوم کیږی. خو نکاح به نه فسخ کیږی. ددې په خلاف بیع ده. چه بیع کې د ثمن ذکر نه کول، بیع فاسد کوی. لکه څنګه چې په کتاب البیوع کې تیر شوی دی. نو د ثمن په سلسله کې د تحالف نه روسته به لامحاله بیع فسخ کیږی. بهرحال د مهر په سلسله کې د تحالف نه روسته د مهر ذکر کول معدوم شو. او نکاح فسخ نشوه. او هرکله چې نکاح فسخ نشوه. اود مهر ذکر کول معدوم شو. نود جګړې ختمولو لپاره به مهرمثل حکم جوړولې شی. نو که مهرمثل د میړه د اقرار کړې شوی مهر برابر وی. یا ددې نه کم وی. نود څومره مهر چې میړه اقرار کړې دې. هم د هغې په اندازه به حکم ورکولې شی. خکه چې ښکاره حال د میړه دقول شاهد دې. او ښکاره حال چې دچا شاهد وی. هغه مدعی علیه وی. اود بینه نه کیدلو په صورت کې د مدعی علیه قول معتبر وی. نو په دې صورت کې به هم د مدعی علیه یعنی د میړه قول معتبر وی. اوهغه مهر به واجب وی. دکوم چې میړه اقرار کړې دی.

(وَإِنْ كَانَ مِثْلَ مَا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ او که د هغې هومره وی. د څومره چې ښځې دعوه کړې ده. أَوْ أَكْثَرَ قُضِيَ بِمَا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ، نو ښځې لپاره به د مهر مثل فیصله کولې شی. وَإِنْ كَانَ مَهْرُ الْمِثْلِ أَكْثَرَ مِمَّا اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ وَأَقَلَّ مِمَّا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ قُضِيَ لَهَا بِمَهْرِ الْمِثْلِ) لِأَنَّهُمَا لَمَّا تَحَالَفَا خکه چې هرکله ښځې خاوند( دواړو) قسم اوخوړلو. لَمْ تَثْبُتِ الزِّيَادَةُ عَلَى مَهْرِ الْمِثْلِ نو نه د مهر مثل نه زیات ثابت شو. وَلَا الْحَطُّ عَنْهُ او نه ددې نه کم ثابت شو.

تشریح: اوکه مهر مثل دومره وی. د څومره چې ښځې دعوه کړې ده. یا ددې نه زیات وی. نود څومره چې ښځې دعوه کړې ده. هم دهغې حکم به ورکولې شی. خکه چې په دې صورت کې ښکاره حال د ښځې شاهد دې. اوکه مهرمثل منځنی وی. یعنی د میړه د اقرار کړې شوی مهرنه زیات وی. اود ښځې د دعوه کړې شوی مهر نه کم وی. نو ښځې لپاره به د مهرمثل حکم ورکولې شی. خکه چې هرکله دواړو قسم اوخوړلو. نونه به د مهرمثل نه زیاتی ثابتیږی. اونه به ددې نه کم ثابتیږی. یعنی د میړه د قسم خوړلو په وجه به د مهرمثل نه زیاتی نه ثابتیږی. اود ښځې د قسم خوړلو په وجه به د مهر مثل نه کم نه ثابتیږی. نو هرکله چې نه د مهرمثل

تحالف جاري كيږي.دغه ډول به اجاره كي هم تحالف جاري كيږي.

اعتراض*خو دلته كي دا اعتراض كيداې شي.چه تحالف لپاره د معقودعليه موجود كيدل شرط دى.او اجاره كي معقود عليه يعنى منفعت معدوم دې.نو په اجاره كي تحالف جاري كيدل پكار نه دي.

خواب*① مونږ ځواب وركوو.چه معدوم كي هم تحالف جارى كيږي.لكه څنګه چي سلم كي مسلم فيه معدوم وى.خو ددې باوجود د اختلاف په صورت كي تحالف جاري كيږي. ② دوهم ځواب دادې.چه كوم شئ اجرت باندې اخستي شوې دى.هغه د منفعت قائم مقام دې.نوداسې شوه.ګويا منفعت موجود دې.او هركله چي منفعت موجود دې.نو تحالف به هم جاري كيږي.

(وَإِنْ وَقَعَ الِاخْتِلَافُ فِي الْأُجْرَةِ)نوكه په اجرت كي اختلاف واقع شو.(بُدِئَ بِيَمِينِ الْمُسْتَأْجِرِ)نود مستاجر د قسم څخه به پيل كولې شي.لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ لِوُجُوبِ الْأُجْرَةِ ځكه چي هغه د اجرت د وجوب منكر دې.(وَإِنْ وَقَعَ فِي الْمَنْفَعَةِ)او كه اختلاف په منفعت كي واقع شو.(بُدِئَ بِيَمِينِ الْمُؤَجِّرِ)نود موجر د قسم څخه به پيل كولې شي.وَأَيُّهُمَا نَكَلَ لَزِمَهُ دَعْوَى صَاحِبِهِ،نو كوم يو هم چي د قسم نه انكار اوكړو.هغه باندې به د هغه د انډيوالان دعوه لازم وى وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ قُبِلَتْ،او كوم كس چي بينه قائم كړل.د هغه بينه به قبلولې شي.وَلَوْ أَقَامَاهَا او كه دواړو بينه قائم كړل.فَبَيِّنَةُ الْمُؤَجِّرِ أَوْلَى إِنْ كَانَ الِاخْتِلَافُ فِي الْأُجْرَةِ،نود موجر بينه به اولى (او راجح) وى.كه په اجرت كي اختلاف وى.(وَإِنْ كَانَ فِي الْمَنَافِعِ)او اګرچه منافعو كي اختلاف وى.(فَبَيِّنَةُ الْمُسْتَأْجِرِ أَوْلَى)،نود مستاجر بينه به اولى وى.(وَإِنْ كَانَ فِيهِمَا)او كه په دواړو كي اختلاف وى.(قُبِلَتْ بَيِّنَةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِيمَا يَدَّعِيهِ مِنْ الْفَضْلِ)نو په دوى كي به د هر يو بينه په هغه زيادت كي قبلولې شي.د كوم چي هغه مدعى وى.نَحْوُ أَنْ يَدَّعِيَ مثلاً موجر دعوه اوكړله.هَذَا الشَّهْرَ بِعَشَرَةٍ چي د يو مياشت لپاره ئې لس درهمه عوض راكړې دى.وَالْمُسْتَأْجِرُ او مستاجر دعوه اوكړله شَهْرَيْنِ بِخَمْسَةٍ چي د دوې (دوه) مياشتو لپاره مې پنځه درهمه عوض وركړې دى.يُقْضَى بِشَهْرَيْنِ بِعَشَرَةٍ نود دوې (دوه) مياشتو لپاره به دلس درهمو په عوض فيصله وركولې شي.

تشريح: صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى.كه اختلاف په اجرت كي واقع شوې وى.نود مستاجر د قسم څخه به پيل كولې شي.ځكه چي مستاجر د اجرت د زيادت منكر دې.اوكه منفعت كي اختلاف واقع شوې وى. نو د موجر د قسم څخه به پيل كولې شي.ځكه چي د منفعت د زيادت منكر هم دې دې.نو كه په دواړو كي كوم يو كس د قسم انكار اوكړو.نوده باندې به دده د انډيوالان دعوه لازم وى.ځكه چي دده انكار بذل دې.يا د انډيوالان د دعوه اقرار دې.لكه څنګه چي وړاندې تير شوى دى.اوكه په دواړو كي يوكس بينه پيش كړل .نود هغه بينه به قبلولې شي.ځكه چي ده ځپله دعوه حجت او دليل سره منور كړې ده.اوكه دواړو بينه قائم كړل.نو كتلې به شي.چه اختلاف په اجرت كي دې.او كه منفعت كي دې.كه اختلاف په اجرت كي وى.نود موجر بينه به قبلولې شي.ځكه چي دده بينه د اجرت زياتوالي ثابتوى.اوكه اختلاف په اجرت او منفعت دواړو كي وى.نو دواړو كي به د هر يو بينه په هغه زيادت كي قبلولې شي.د كوم چي هغه دعوه كوى.مثلاً موجر دعوه كوى.چه دا كور په لس درهمه د يومياشت كرايه باندې دې او مستاجر دعوه كوى.چه دا كور دپنځه درهمو په عوض د دوې (دوه) مياشتو په كرايه باندې دې.نو قاضى به د دوې (دوه) مياشتو په حق كي د مستاجر بينه اود لس درهمو په حق كي د موجر بينه قبلوى.اودا فيصله به كوى.چه دا كور د لس درهمو په عوض د دوې (دوه) مياشتو په كرايه باندې دې.

### د منافعو حاصلولو نه روسته اختلاف كيدو د تحالف حكم

قَالَ (وَإِنْ اخْتَلَفَا بَعْدَ الِاسْتِيفَاءِ)اوكه د منافعو وصولولو نه روسته دواړو اختلاف اوكړو.(لَمْ يَتَحَالَفَا)نو دواړه به قسم نه خورى.(وَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُسْتَأْجِرِ)اود مستاجر قول به معتبر وى.وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ظَاهِرٌ؛



قَالُوا او كه ګواهانو اوونيل.نَعْرِفُهُ بِوَجْهِهِ چي دې مونږ د شكل نه پيژنو.وَلَا نَعْرِفُهُ بِاسْمِهِ وَنَسَبِهِ او په نوم او نسب سره نه پيژنو.فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ(¹) لِلْوَجْهِ الثَّانِي،نو بيا هم د امام محمد رحمه الله په نيز د دوهم علت په وجه هم دا حكم دي.وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ تَنْدَفِعُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خصومت دفع كيږي.لِأَنَّهُ أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ أَنَّ الْعَيْنَ وَصَلَ إلَيْهِ مِنْ جِهَةِ غَيْرِهِ ځكه چي هغه په ګواهئ سره دا خبره ثابت كړې ده.چه دا مال عين ده ته د بل اړخه رارسيدلې دي.حَيْثُ عَرَفَهُ الشُّهُودُ بِوَجْهِهِ،ځكه چي هغه صورت سره پيژني.بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د رومبى صورت،فَلَمْ تَكُنْ يَدُهُ يَدَ خُصُومَةٍ نو دده قبضه د خصومت قبضه نشوه.وَهُوَ الْمَقْصُودُ،او هم دا مقصود دي.وَالْمُدَّعِي هُوَ الَّذِي أَضَرَّ بِنَفْسِهِ حَيْثُ نَسِيَ خَصْمَهُ او مدعى خپل خان ته ضرر رسولې دي.چه هغه خپل مدعى عليه هير كړو.أَوْ أَضَرَّهُ شُهُودُهُ دون المدعى عليه يا دده ګواهانو ده ته ضرر رسولې دي.مدعى عليه نه دي رسولي.

تشريح: اوكه ګواهانو اوونيل.چه مونږ ددې وديعت ايخودونكې په شكل وصورت سره پيژنو.نو بيا به هم د امام محمد رحمه الله په نيز د دوهم دليل په وجه دا حكم وى.چه خصومت به نه دفع كيږي.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به خصومت لرې كيږي.ځكه چي قابض د ګواهانو په ذريعه دا خبره ثابت كړې ده.چه دا غلام يعنى مال عين دده سره دمدعى نه د علاوه د اړخه رارسيدلې دي.چه ګواهان دې په صورت سره پيژني.په خلاف د رومبى صورت،چه هلته كي د مدعى نه د علاوه د اړخه ملاويدل نه دى ثابت شوى.نو په دوهم صورت كي قابض يعنى د مدعى عليه قبضه دخصومت قبضه نشوه.بلكه د ساتنه قبضه شوه.او هم دا مقصود ده.او پاتې شو مدعى ته ضرر رسيدل،نو ددې ځواب دادې.چه مدعى پخپله خپل ځان ته ضرر رسولې دې.چه خپل مدعى عليه ئې هير كړو.ياد مدعى عليه ګواهانو هغه ته ضرر رسولې دې.بهرحال مدعى عليه ضرر اورسولو.

وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ مُخَمَّسَةُ كِتَابِ الدَّعْوَى دا مسئله په كتاب الدعوه كي مخمسه مشهوره ده.وَقَدْ ذَكَرْنَا الْأَقْوَالَ الْخَمْسَةَ مونږ پنځه قوله ذكر كړل.

علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه دا مسئله په،،كتاب الدعوه،، كي د مخمسه په لقب سره مشهور ده.او ددې مسئلې لاندې ئې پنځه اقواله ذكر كړې دى.چه هغه پنځه اقواله دادى.① د ابن شبرمه رحمه الله ② د ابن ابى ليلى رحمه الله ③ د امام ابويوسف رحمه الله ④ د امام محمد رحمه الله ⑤ د امام ابوحنيفه رحمه الله،

### د مدعى عليه د غلام اخستلو دعوى كول

(وَإِنْ قَالَ:)اوكه مدعى عليه اوونيل.(ابْتَعْتُهُ مِنْ الْغَائِبِ)چي ما دا غلام د غائب سړى نه اخستې دي.(فَهُوَ خَصْمٌ)نو هغه به خصم وى.لِأَنَّهُ لَمَّا زَعَمَ أَنَّ يَدَهُ يَدُ مِلْكٍ ځكه چي قابض اقرار اوكړو.چه دده قبضه د ملك قبضه ده.اعْتَرَفَ بِكَوْنِهِ خَصْمًا نو ده دخپل خان د خصم كيدلو اقرار اوكړو.(وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِي:)اوكه مدعى اوونيل.(غَصَبْتُهُ مِنِّي) چي تا دا زما نه غصب كړې دې.(أَوْ سَرَقْتُهُ مِنِّي)يا تا دا زما نه غلا كړې دې.(لَا تَنْدَفِعُ الْخُصُومَةُ وَإِنْ أَقَامَ ذُو الْيَدِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْوَدِيعَةِ)نود قابض د ذمې څخه به خصومت نه لرې كيږي.اګرچه قابض وديعت باندې بينه قائم كړې وى.لِأَنَّهُ إنَّمَا صَارَ خَصْمًا بِدَعْوَى الْفِعْلِ عَلَيْهِ لَا بِيَدِهِ، ځكه چي قابض د فعل غصب يا فعل سرقه دعوه كيدلو سره خصم شوې دې.پخپلې قبضې سره نه دې خصم شوې.

تشريح: صورت د مسئلې دادې.كه يوسړى په بل باندې دعوه اوكړله.چه دده په قبضه كي كوم غلام دې.هغه زما ملك دې.مدعى عليه چي دا واوريدل.نو وې وئيل.چه ما دا غلام د فلانى سړى نه اخستې دې.چه هغه

¹)القول الراجح هوقول محمد رحمه الله كذا فى جمع الأنهر(٣٧٠\٣) وبحر(٢٢٨\٩٧) والدرالمختار(٤٨٣\٤) والهندية (٤٥٥\٤) نقلاً عن القول الراجح(١٨٢\٢)

دي وخت په سفر کي دي.نو په دې صورت کي به دا قابض ددې مدعی خصم او مدعی علیه وي.یعنی قاضی لپاره به ددې دعوه سماعت (اوریدل) جائز وي.

ؒ دلیل دادې.چه هرکله قابض دا اووئیل.چه زما قبضه مالکانه قبضه ده.نو ده د خپل خصم او مدعی کیدلو اقرار کړې دې.اوکه مدعی په پیل کي دا اووئیل.چه تا دا غلام زما نه غصب کړې دې.یا دې زما نه غلا کړې دې.نو بیا به هم قابض نه خصومت نه لرې کیږي.اګرچه هغه په دې باندې بینه قائم کړي.چه فلانی غائب زما سره دا غلام ودیعت ایخودې دې.ځکه چي قابض خصم ځکه شو.چه ده باندې د فعل غصب یا د غلا د فعل دعوه ده.دې د خپلي قبضي په وجه خصم او مدعی علیه نه دې جوړ شوې.

| بِخِلَافِ دَعْوَى الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ په خلاف د ملك مطلق د دعوه. لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِيهِ بِاعْتِبَارِ يَدِهِ چي هغه په دې کي د خپلي قبضي په وجه خصم دې. حَتَّى لَا يَصِحُّ دَعْوَاهُ عَلَى غَيْرِ ذِي الْيَدِ تردې چي غیر قابض باندې د ملك مطلق دعوه صحیح نه ده. وَيَصِحُّ دَعْوَى الْفِعْلِ اود فعل دعوه په غیر قابض باندې صحیح ده. |
|---|

**تشریح:** ددې په خلاف د ملك مطلق دعوه ده.چه دې کي قابض د خپلي قبضي په وجه خصم وي.تردې چي غیر قابض باندې د ملك مطلق دعوه صحیح نه ده.اوکه غلا یا غصب وغیره د بل څه فعل دعوه وي.نو هغه په غیر قابض باندې هم صحیح ده.

| (وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِي :اوکه مدعی اووئیل. سُرِقَ مِنِّي چي دا شئ زما نه غلا شوي دې. وَقَالَ صَاحِبُ الْيَدِ :او قابض اووئیل. أَوْدَعَنِيهِ فُلَانٌ چي فلانی زما سره دا ودیعت ایخودې دې. وَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ اوبینه ئې قائم کړل. لَمْ تَنْدَفِعِ الْخُصُومَةُ)نوخصومت به نه دفع کیږي. وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ()دا قول د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف ؒ دې. وَهُوَ اسْتِحْسَانٌ ،اودا استحسان دې. وَقَالَ مُحَمَّدٌ :او امام محمد ؒ فرمائي. تَنْدَفِعُ چي صومت لرې کیږي. لِأَنَّهُ لَمْ يَدَّعِ الْفِعْلَ عَلَيْهِ ځکه چي مدعی په ده باندې د څه فعل دعوه نه ده کړې. فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ :اودا داسې شوه.لکه چي مدعی اووئیل. غُصِبَ مِنِّي عَلَى مَا لَمْ يُسَمَّ فَاعِلُهُ. چي زما نه دا شئ غصب شوې دې.یعنی ځوك غاصب ئې بیان نکړو. |
|---|

**تشریح:** په عبارت کي څه اشکال نشته چي وضاحت ئې اوشي.

| وَلَهُمَا د امام ابوحنیفه او امام ابویوسف ؒ دلیل دادې. أَنَّ ذِكْرَ الْفِعْلِ يَسْتَدْعِي الْفَاعِلَ لَا مَحَالَةَ، چي د غلا فعل تقاضا کوي.چه ځوك غلا کونکې وي. وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ هُوَ الَّذِي فِي يَدِهِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يُعَيِّنْهُ دَرْءًا لِلْحَدِّ او ښکاره هم دا ده.چه غل هم هغه دې.دچا په قبضه کي چي دا شئ دې.خو مدعی دا معین نکړو. شَفَقَةً عَلَيْهِ یو په دې غرض، چي د شفقت په خیال ئې دده نه قطع د ید دفع کول اوغوښتل. وَإِقَامَةً لِحِسْبَةِ السِّتْرِ وهم دا چي ده د پردې اچولو د ثواب لحاظ اوساتلو. فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ :نودا قول داسې شو.لکه چي ده مدعی علیه ته اووئیل. سَرَقْتَ، چي تا غلا کړې ده. بِخِلَافِ الْغَصْبِ او په غصب کي دا خبره نشته. لِأَنَّهُ لَا حَدَّ فِيهِ ځکه چي دې کي هیڅ حد نشته. فَلَا يُحْتَرَزُ عَنْ كَشْفِهِ نو ددې د ښکاره کاوه څخه به ځان نه ساتي.(بلکه ښکاره به یې). |
|---|

**تشریح:** په عبارت کي څه اشکال نشته چي وضاحت ئې اوشي.

**د مدعی د اختلو دعوې او د قابض د ودیعت اقرار کښي د خصومت حکم**

| (وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعِي :او کله چي مدعی اووئیل. ابْتَعْتُهُ مِنْ فُلَانٍ چي ما دا شئ د فلانی نه اخستې دې. وَقَالَ صَاحِبُ الْيَدِ :او قابض اووئیل. أَوْدَعَنِيهِ فُلَانٌ ذَلِكَ چي هم هغه دا شئ زما سره ودیعت ایخودې |
|---|

[1]) القول الراجح هو قول الشیخین ؒ کذا فی ردالمحتار(٤٨٥\٤) ومجمع (٣٧١) والهندیة (٤٩\٤) والبحر الرائق (٢٣٢\٧) نقلاً عن القول الراجح(١٨٤\٢)



| دې. أُسْقِطَتِ الْخُصُومَةُ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ) نو خصومت به د بینه نه بغیر ساقطیږي.یعنی مدعی علیه ته به د بینه قائمولو ارتیا نه وي. لِأَنَّهُمَا تَوَافَقَا عَلَى أَنَّ أَصْلَ الْمِلْكِ فِيهِ لِغَيْرِهِ ځکه چي هرکله مدعی او مدعی علیه اتفاق اوکړو.چه په دې څیز کي اصلی ملك د مدعی علیه نه علاوه د بل سړي دې. فَيَكُونُ وُصُولُهَا إِلَى يَدِ ذِي الْيَدِ مِنْ جِهَتِهِ نود مدعی علیه په قبضه کي رارسیدل به هم د هغه د اړخه وي. فَلَمْ تَكُنْ يَدُهُ يَدَ خُصُومَةٍ نود قابض قبضه د خصومت قبضه نشوه. إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْبَيِّنَةَ خودا چي په دې خبره بینه قائم کړي. أَنَّ فُلَانًا وَكَّلَهُ بِقَبْضِهِ چي فلانی زه په دې باندې د قبضه کاوه وکیل کړې یم. لِأَنَّهُ أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ كَوْنَهُ أَحَقَّ بِإِمْسَاكِهَا، وَاللَّهُ أَعْلَمُ نو په دې صورت کي قبضه کولې شي.ځکه چي ده پخپل بینه سره ثابته کړله.چه دې ددې د ساتلو زیات مستحق دې. |
|---|

**تشریح:** په درې واړه عبارتونوکي څه اشکال نشته.

## بَابُ مَا يَدَّعِيهِ الرَّجُلَانِ

ژباړه: (دا) باب د دوو سړو د دعوه (په بیان کي) دې.

**په یو ملك کښي د دوو کسانو د دعوې کولو مسئله**

| وَإِذَا ادَّعَى اثْنَانِ عَيْنًا فِي يَدِ آخَرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا (دوه) سړو د یو خاص شئ دعوه اوکړله.ګوم چي د دریم کس په قبضه کي دې. يَزْعُمُ أَنَّهَا لَهُ وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ بِهَا بَيْنَهُمَا) او هغوی کي هریو کس وائي.چه دا شئ زما دې.او دواړو بینه قائم کړل.نودا فیصله به کولې شي.چه دا شئ دې دواړو کي برابر دې. |
|---|

**تشریح:** علامه مرغینانی ؒ چي د یو سړي د دعوه د احکامو نه فارغ شو.نو په دې عبارت کي ئې د دوې (دوه) کسانو د دعوه احکام بیانولو باندې پیل اوکړله. لأن المثنی بعد الواحد (غایه)

ؒ مخکي یوه قاعده باندې پوهه شئ:چه په مسئلو آسانتیا سره پوه شئ:قاعده داده.چه کله د مطلق ملکیت دعوه په داسې دوې (دوه) سړو کي وي.چه دوی کي یو قابض وي.او دوهم غیرقابض وي (چه ده ته خارج وائي).نو زموږ په نیز (عندالاحناف) د غیرقابض (خارج) حجت به مقدم وي. امام احمد ؒ هم ددې قائل دې.اود امام شافعي او امام مالك ؒ په نیز د قابض حجت به مقدم وي.بیا که یوکس په ګواهئ سره څه وخت بیان کړو.بیا به هم د طرفینو ؒ په نیزد خارج ګواهي معتبر وي.اود امام ابویوسف ؒ په نیز به دهغه کس ګواهان معتبر وي.چاچه وخت ثابت کړې دې.اوس دوې (دوه) سړو دیو شئ دعوه اوکړله.او هغه شئ د دریم کس په لاس کي دې.او دواړو ګواهان قائم کړل.نو زموږ په نیز به دغه شئ دواړو کي دوې (دوه) حصوکي برابر تقسیمیږي.

| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي قَوْلٍ :امام شافعي ؒ په یوقول کي فرمائي. تَهَاتَرَتَا، چي د دواړو بینه به ساقطیږي. وَفِي قَوْلٍ او په یوقول کي فرمائي. يُقْرَعُ بَيْنَهُمَا، چي دوی کي به قرعه اندازي کولې شي. |
|---|

**تشریح:** د امام شافعي (عند الشوافع رحمهم الله په نیز به د دواړو ګواهان ساقط الاعتبار وي.د امام احمد ؒ په نیز به قرعه اندازي کولې شي.دا یو قول د امام شافعي ؒ هم دې.ځکه چي په یقین سره دواړو کښي د یو کس ګواهان دروغجن دي.

| لِأَنَّ إِحْدَى الْبَيِّنَتَيْنِ كَاذِبَةٌ بِيَقِينٍ ځکه چي یو بینه یقیناً کاذب دي. لِاسْتِحَالَةِ اجْتِمَاعِ الْمِلْكَيْنِ فِي الْكُلِّ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ په کُل شئ کي په حالت واحده سره اجتماع د ملکینو محال کیدلو په وجه، وَقَدْ تَعَذَّرَ التَّمْيِيزُ اود دروغ بینه توپیر متعذر شو. فَيَتَهَاتَرَانِ نو دواړه به ساقطیږي. |
|---|

**تشریح:** ځکه چي په یو وخت کي په یوڅیز کي د دوو ملکیتونو مجمع کیدل محال (او ناممکن) دی.اود رشتونی او د دروغجنو ګواهانو منځ کي توپیر ګول مشکل دې.نو دواړه به ساقطیږي.یا به قرعه اندازي

كولي شي.

أَوْيُصَارُإِلَى الْقُرْعَةِيا به قرعه ارخ ته رجوع كولي شي. {لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَقْرَعَ فِيهِخكه چې نبى كريمﷺ په داسې معامله كې قرعه واچوله. وَقَالَ:او وې فرمائيل اللَّهُمَّ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَهُمَا}(۱) اې الله په دوى كې هم ته حاكم يې.

تشريح: خكه چې نبى كريمﷺ په داسې قسمه واقعه كې قرعه اندازى كړې وه.او فرمائيلي ئې وو چه اې الله په دې دواړو كې هم ته فيصله كونكې يې.لكه چې حافظ طبرانى په معجم اوسط كې د حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كړې دې. «ان رجلين اختصما الى رسول اللهﷺ فجاء كل واحد منهما بشهود عدول وفى عدة واحدة فساهم بينهما رسولﷺ وقال اللهم اقض بينهما» دا امام ابوداؤد پخپلو مراسيلوكې هم ذكر كړې دې.او عبدالرزاق هم مرسلاً روايت كړې دې.

وَلَنَاحَدِيثُ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَةَزموږ دليل د تميم بن ارخه حديث دې. {أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي نَاقَةٍ چې دوې (دوه) سړو د نبى كريمﷺ په خدمت كې د يوې اوښې په اړه كې جګړه پيش كړله.وَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَاو دواړو بينه قائم كړل.فَقَضَى بِهَا بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ(۲)} . نو نبى كريمﷺ په دواړو كې د نصف نصف كيدلو حكم وركړو

تشريح: علامه مرغينانى رحمه الله په دې عبارت كې د احنافو رحمهم الله دليل ذكر كوى.زموږ (د احنافو) دليل د تميم بن ارخه حديث دى.چه ددې تخريج ابن ابى شيبه او عبدالرزاق پخپل خپل مصنف كې او بيهقى په،،كتاب المعرفه،،كې كړې دې. «ان رجلين ادعيا بعيراً فاقام كل واحد منهما البينة أنه له فقضى النبيﷺ به بينهما» چه،،د نبى كريمﷺ په خدمت كې دوې (دوه) سړو د اوښ په اړه كې دعوه اوكړله.او په دوى كې هريو كس ګواهان قائم كړل.چه دا اوښ زما دې.نو نبى كريمﷺ ددوى دواړو په منځ كې نيم په نيمه ويش كړو،،په دې باب كې د حضرت ابوموسى اشعرى ،ابو هريره،او جابربن سمرهؓ نه مسند احاديث هم وارد دى.

وَحَدِيثُ الْقُرْعَةِ كَانَ فِي الِابْتِدَاءِاو حديث د قرعې په ابتداء د اسلام كې وو. ثُمَّ نُسِخَ،بيا منسوخ شو

تشريح: باقي شوه قرعه اندازى نودا حكم په ابتداء د اسلام كې وو.بيا منسوخ شو.لكه څنګه چې امام طحاوى رحمه الله ثابت كړى دى.

وَلِأَنَّ الْمُطْلَقَ لِلشَّهَادَةِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُحْتَمَلُ الْوُجُودِاو خكه چې فريقينو كې د هريو په حق كې مطلق شهادت محتمل الوجود دې.بَلْ يَعْتَمِدُ أَحَدُهُمَا سَبَبَ الْمِلْكِ وَالْآخَرُ الْيَدَبه دې طريقه چې يو فريق د ملك په سبب او دوهم په قبضه باندې اعتماد اوكړو.فَصَحَّتْ الشَّهَادَتَانِنو دواړه ګواهيانې صحيح شوې.فَيَجِبُ الْعَمَلُ بِهِمَا مَا أَمْكَنَنو كومه پورې چې ممكن ده.دواړو باندې عمل ضرورى دې.وَقَدْ أَمْكَنَ بِالتَّنْصِيفِاو دلته د تنصيف په طريقه عمل ممكن دې.إِذْ الْمَحَلُّ يَقْبَلُهُ،خكه چې محل د تنصيف قابل دې.وَإِنَّمَا يُنَصَّفُاو تنصيف خكه اوشو.لِاسْتِوَائِهِمَا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ چې د استحقاق سبب كې دواړه برابر دى

تشريح: دا زموږ عقلى دليل دې.چه فريقينو كې هر يو لپاره د عادلو ګواهانو كوم شي: د شهادت جائز ګرخولو احتمال لرى.هغه محتمل الوجود دې.په دې طريقه چې ممكن ده.يو فريق د ملكيت په سبب باندې اعتماد كړې وى.او دوهم په ښكاره قبضې په كتلو ګواهى وركړې وى.او هرهغه شهادت چې هغې لپاره داسې قسمه

---

۱)عن أبى هريرةؓ أن رجلين إختصما إلى رسول اللهﷺ فجاء كل واحد منهما بشهود عدول وفى عدة واحدة فساهم بينهما رسول اللهﷺ وقال اللهم اقض بينهما أخرجه الهيثمى(رح) فى مجمع الزوائد (۲۰۳\٤)_

۲)أخرجه ابن أبى شيبة فى مصنفه (نصب الراية ٤\۲۳۷)_



مجيز (د جواز احتمال) موجود وى.هغه صحيح وى.كه د واقع مطابق وى. او كه نه وى.خكه چې د شهادت صحت په واقع كې د مشهود به تحقق باندې موقوف نه دې.خكه چې دا خود غيبو خبره ده.چه په دې باندې بنده ګان نشى خبريدلې.بلكه د شهادت د صحت اعتماد په ښكاره حالت باندې دې.نو دواړه شهادتونه صحيح شو.نو تركومه چې ممكن وى.دواړو باندې عمل كول ضرورى دى.او دلته كې عمل په دې طريقه ممكن دې.چه دواړو لپاره د نصف نصف حكم وركړې شى.خكه چې محل قابل تنصيف دې.او قابل تنصيف خكه دې.چه د استحقاق په سبب كې دواړه برابر دى.

**په يوې ښځې باندې د دوو سړو د نكاح د دعوې حكم**

قَالَ (فَإِنْ ادَّعَى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كه دعوه اوكړله په دوى كې هر يو نِكَاحَ امْرَأَةٍد نكاح د يوې ښځې، وَأَقَامَا بَيِّنَةًاو دواړو بينه قائم كړل.لَمْ يَقْضِ بِوَاحِدَةٍ مِنْ الْبَيِّنَتَيْنِ)نو فيصله به نه كيږى.په دواړو كې په يو بينه هم.دواړو باندې لِتَعَذُّرِ الْعَمَلِ بِهِمَا،د عمل متعذر كيدلو په وجه.

تشريح: علامه مرغينانى رحمه الله په دې عبارت سره يوه مسئله بيانوى.كه دوې (دوه) سړو يوې ښځې سره نكاح باندې ګواهان قائم كړل.نو دواړه به ساقط الاعتبار وى.خكه چې دلته كې شركت د سره ممكن نه دې.په خلاف د املاكو چې په دې كې شركت ممكن دې.اوس به ښځه د هغه كس بى بى وى.دكوم كس چې دا تصديق اوكړى.په دې شرط چې دواړو ګواهانو تاريخ نه وى بيان كړې.كه تاريخ ئې بيان كړو.نودكوم كس تاريخ چې وړاندې وى.ښځه به هم د هغه كس وى.اوكه د ګواهانو قائمولو نه وړاندې ښځې د يو كس دمنكوحه كيدلو اقرار اوكړو.نو ښځه به هم د هغه وى.بيا كه دوهم كس پخپله منكوحه كيدلو باندې بينه قائم كړل.نو ښځه به هغه ته وركولې شى.خكه چې ګواهى د اقرار نه زيات مضبوط دى. خكه چې ګواهان حجت متعديه دى.او اقرار حجت قاصره دې.حاصل دا چې د تاريخ مخكې والې په ټولو باندې راجح دې.بيا قبضه، بيا وطى ، بيا د تاريخ والا اقرار دې.

لِأَنَّ الْمَحَلَّ لَا يَقْبَلُ الِاشْتِرَاكَ.خكه چې محل قابل د اشتراك نه دې.قَالَ (وَيَرْجِعُاو رجوع به كولې شى.إِلَى تَصْدِيقِ الْمَرْأَةِ لِأَحَدِهِمَا)د يو كس لپاره د ښځې تصديق ارخ ته.لِأَنَّ النِّكَاحَخكه نكاح داسې شئ دې. مِمَّا يُحْكَمُ بِهِ بِتَصَادُقِ الزَّوْجَيْنِ چې د زوجينو خپل منځ كې تصديق سره ددې حكم وركولې شى.

تشريح: مطلب د ترجمې نه واضح دې

وَهَذَااودا حكم إذَا لَمْ تُوَقَّتْ الْبَيِّنَتَانِ،په هغه وخت كښې دې چې ګواهانو وخت نه وى خودلې فَأَمَّا إذَا وَقَّتَااوكه دوى دواړو وخت خودلى وى (چه په فلانى وخت كښې دې سړى د دې ښځې سره نكاح كړې وه)فَصَاحِبُ الْوَقْتِ الْأَوَّلِ أَوْلَىنو د اولنى تاريخ والا به غوره وى (يعنى دهغه لپاره به فيصله كولې شى) وَإِنْ أَقَرَّتْ لِأَحَدِهِمَا قَبْلَ إقَامَةِ الْبَيِّنَةِاو كه ښځې اقرار اوكړو.د بينه قائمولو نه وړاندې د يوكس دپاره،فَهِيَ امْرَأَتُهُ)نودا به د هغه كس ښځه وى.لِتَصَادُقِهِمَاددوى دواړو خپل منځ كې د تصديق په وجه(وَإِنْ أَقَامَ الْآخَرُ الْبَيِّنَةَ قُضِيَ بِهَا)لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ أَقْوَى مِنْ الْإِقْرَارِ

تشريح: مطلب د ترجمې نه واضح دې

وَلَوْ تَفَرَّدَ أَحَدُهُمَا بِالدَّعْوَىاوكه په دوى كې صرف يو كس دعوه اوكړله.وَالْمَرْأَةُ تَجْحَدُاو ښځه انكار كوى.فَأَقَامَ الْبَيِّنَةَنو مدعى بينه قائم كړل.وَقَضَى بِهَا الْقَاضِي لَهُاو قاضى ددې مطابق حكم وركړو.ثُمَّ ادَّعَى الْآخَرُبيا دوهم كس دعوه اوكړله.وَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى مِثْلِ ذَلِكَاو په دې ئې بينه قائم كړل.لَا يُحْكَمُ بِهَا)نو ددې مطابق به حكم نشى وركولې.لِأَنَّ الْقَضَاءَ الْأَوَّلَ قَدْ صَحَّخكه چې رومبۍ فيصله صحيح شوه.فَلَا يُنْقَضُ بِمَا هُوَ مِثْلُهُنو هم ددې پشان سره به نشى ماتولې.بَلْ هُوَ دُونَهُبلكه دا خود هغې نه هم كمتره ده.(إلَّا أَنْ يُوَقِّتَ شُهُودُ الثَّانِي سَابِقًا)خوكه نور

گواهان وړاندې تاريخ بيان کړي.

تشريح: اوکه په دوی کې صرف يو کس دعوه اوکړله.حالانکه ښځه د نکاح نه منکره ده.نو مدعي گواهان قائم کړل.او قاضي ددې مطابق حکم ورکړو.بيا دوهم مدعي دعوه اوکړله.او گواهان ئې قائم کړل.يا خو به ددې لپاره هيڅ حکم نه وی.خکه چې ړومبې حکم قضاء صحيح شوې دې.نو ددې په مثل سره به نشی ماتولې.بلکه دويمه معامله خو ددې نه هم کمه ده.( خکه چې ړومبی بينه د قضاء حکم سره د ملاويدلو په وجه قوی شو) البته که د مدعي ثاني گواهان د نکاح اول نه وړاندې تاريخ بيان کړي.نو ړومبې فيصله به ماتولې شی.خکه چې اوس په ړومبې مسئله کې خطاء کيدل يقيني طور باندې ښکاره شو.دغه ډول ښځه که دخپل ميړه په قبضه کې وی.او ددې نکاح ښکاره وی.نود غيرقابض گواهان به نه قبليږی.خوکه دده گواهان د ړومبې نکاح نه وړاندې تاريخ بيان کړي ( نو قبلولې به شی ).

لِأَنَّهُ ظَهَرَ الْخَطَأُ فِي الْأَوَّلِ بِيَقِينٍ. خکه چې حکم اول کې د خطاء کيدل يقيني ښکاره شو. وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ فِي يَدِ الزَّوْجِ دغه ډول که ښځه د ميړه په قبضه کې وی. وَنِكَاحُهُ ظَاهِرٌ اود هغې نکاح ښکاره وی. لَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ الْخَارِجِ نود غيرقابض بينه به نه قبليږی. إِلَّا عَلَى وَجْهِ السَّبْقِ. خود وړاندې والی په طور باندې

تشريح: په دې کې څه قدرې تسامح ده.خکه چې شهادتونه د ظنياتو د قبيلې څخه دی.د يقينياتو د قبيلې څخه نه دی.لکه څنگه چې فقهاؤ وضاحت کړې دې.او غالباً په دې وجه صاحب د کافي لفظ د ،، بيقين،، پريښودې دې.

قَالَ فرمايي (وَلَوِ ادَّعَى اثْنَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا اوکه دعوه اوکړله دواړو کې هر يو. أَنَّهُ اشْتَرَى مِنْهُ هَذَا الْعَبْدَ) چې دا غلام ما دهغه نه اخستې دې مَعْنَاهُ مِنْ صَاحِبِ الْيَدِ. يعني د قابض نه. وَأَقَامَا بَيِّنَةً او دواړو بينه قائم کړل. فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ نو دوی کې به هريو ته اختيار وی. إِنْ شَاءَ أَخَذَ نِصْفَ الْعَبْدِ بِنِصْفِ الثَّمَنِ که غواړي.د نصف ثمن په عوض دې واخلی. وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ) که غواړي ، ترك دې کړي. لِأَنَّ الْقَاضِيَ يَقْضِي بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ څه چې قاضی به دوی کې د غلام د نصف کيدلو حکم ورکوی. لِاسْتِوَائِهِمَا فِي السَّبَبِ په سبب کې د دوی دواړو د برابر کيدلو په وجه. فَصَارَ كَالْفُضُولِيَّيْنِ إِذَا بَاعَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ رَجُلٍ نو داسې شوه.لکه چې دواړو فضوليانو کې هر يو د بل په لاس خرڅ کړي. وَأَجَازَ الْمَالِكُ الْبَيْعَيْنِ او مالك دواړه بيع جائز اوگرخوی. يُخَيَّرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا چې هريو ته اختيار وی. لِأَنَّهُ تَغَيَّرَ عَلَيْهِ شَرْطُ عَقْدِهِ، خکه چې هرمشتری باندې دده شرط عقد متغير شو. فَلَعَلَّ رَغْبَتَهُ فِي تَمَلُّكِ الْكُلِّ خکه چې شايد دده شوق د کُل غلام ملك حاصلول دی. فَيَرُدُّهُ نوکه دې غواړي.بيع دې واپس کړي. وَيَأْخُذُ كُلَّ الثَّمَنِ او کُل ( پوره) ثمن دې واخلی.

تشريح: اوکه په دوې (دوه) سړو کې يوکس دعوه اوکړله.چه ما دا غلام ددې سړی ( يعنی قابض) نه اخستې دې.او هر يو مدعي د تاريخ ذکر کاوه نه بغير بينه قائم کړل.نو په دوی کې به هر يو ته دا اختيار وی.که غواړي.نو نصف غلام دې د نصف قيمت په بدله کې واخلی.که غواړي ، نو ترك دې کړي.( نه دې اخلی ).خکه چې قاضي به د دوې دواړو په منځ کې دغلام د نصف نصف کيدلو فيصله کوی.خکه چې سبب کې دواړه برابر دی.نو داسې شوه.لکه چې دوې (دوه) فضولی د دريم سړی غلام د خپل خپل مشتری په لاس خرڅ کړي.او مالك د دواړو بيع جائز اوساتی.چه هر يو مشتری ته دا اختيار وی.که غواړي واديخلی.که غواړي پريد يږدی.خکه چې هرمشتری باندې دهغه شرط عقد ( رضا) بدله شوه.خکه ممکن ده.چه دده شوق دا وی.چه زه پوره غلام حاصل کړم.

ف د امام شافعي ، امام مالك، او امام احمد رحمهم الله په نيز هم په يو يو روايت کې حکم هم دا دې.د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله نه دوهم روايت دادې.چه قرعه اندازی به کولې شی.د امام شافعي رحمه الله نه دريم روايت دادې.چه دواړه گواهان به ساقط الاعتبار وی.او بائع اړخ ته به رجوع کولې شی. قوله: ان صدق احدهما سلم



إليه قوله معناه من صاحب اليد دا قيد څکه دې.که په دوی کې هريو د غيرقابض نه د اخستلو دعوه اوکړله. نودا به د دوې (دوه) حالو نه خالی نه وی.يا به د دواړو دعوه د يو سړی نه د اخستلو وی.يا به د دوې (دوه) ( جلا جدا) سړو نه وی.او ددې په حکم کې تفصيل دې چه دا په کتاب کې روسته راروان دې.

## د قاضي د نصف غلام په فيصله باندې د يو مدعي د نه راضي کيدو حکم

فَإِنْ قَضَى الْقَاضِي بِهِ بَيْنَهُمَا بيا که قاضي حکم ورکړو.ددوی دواړو کې د غلام د نصف نصف کيدلو. فَقَالَ أَحَدُهُمَا: بيا يو کس اووئيل. لَا أَخْتَارُ چې نصف اخستل نه غواړم. لَمْ يَكُنْ لِلْآخَرِ أَنْ يَأْخُذَ جَمِيعَهُ) نود دوهم لپاره به د پوره غلام اخستلو اختيار نه وی. لِأَنَّهُ صَارَ مَقْضِيًّا عَلَيْهِ فِي النِّصْفِ خکه چې ده باندې نصف کې حکم اوشو. فَانْفَسَخَ الْبَيْعُ فِيهِ، نو په نصف کې بيع ماته شوه.

تشريح: په مذکوره عبارت کې علامه مرغيناني رحمه الله فرمانی.که قاضي دا فيصله ورکړله.چه دا غلام دواړو کې نيم په نيمه مشترك دې.بيا په دوی کې يوکس اووئيل. چې زه نيم نه اخلم.نو اوس دوهم مشتری پوره غلام نشی اخستلې.خکه چې هغه مقتضی عليه شو.يعنی ده باندې نصف غلام کې فيصله ورکړې شوه.نو په دغه نصف کې بيع ماته شوه.او کله چې عقد د قاضي په قضاء سره مات شی.نو هغه د تجديد نه بغير نه واپس کيږی.او دلته کې تجديد ( دوباره عقد) نه دې موندې شوې.

وَهَذَا لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِيهِ اودا خکه چې دې په دې نصف کې خصم دې. لِظُهُورِ اسْتِحْقَاقِهِ بِالْبَيِّنَةِ د بينه په ذريعه د بل کس داستحقاق ښکاره کيدلو په وجه. لَوْلَا بَيِّنَةُ صَاحِبِهِ که د هغه بينه نه وو

تشريح: په دې عبارت کې علامه مرغيناني رحمه الله د يو سوال خواب ورکوی.سوال دادې.چه دغه مشتری خو مدعي دې.بيا مقضی عليه څنگه کيدای شی.خواب دادې.چه هغه په دې نصف کې خصم دې.خکه چې په دې نصف کې د دوهم مشتری مستحق کيدل د گواهانو په ذريعه ثابت شوی دی.تردې که پخپله دده گواهان نه وې.نو دې به د پوره مستحق ښکاره کيدلو.

بِخِلَافِ مَا په خلاف ددې کله لَوْ قَالَ ذَلِكَ قَبْلَ تَخْيِيرِ الْقَاضِي چې ده دا د قاضي د حکم نه وړاندې ووئيلی وی. حَيْثُ يَكُونُ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ الْجَمِيعَ چې په دې صورت کې به دوهم لپاره د کُل غلام اخستلو اختيار وی. لِأَنَّهُ يَدَّعِي الْكُلَّ خکه چې هغه د کُل غلام مدعي دې. وَلَمْ يَنْفَسِخْ سَبَبُهُ، او اوس دهغه سبب نه دې فسخ شوې. وَالْعَوْدُ إِلَى النِّصْفِ لِلْمُزَاحَمَةِ اود نصف اړخ ته رجوع د مزاحمت په وجه وه. وَلَمْ تُوجَدْ، او هغه اونه موندې شو. وَنَظِيرُهُ تَسْلِيمُ أَحَدِ الشَّفِيعَيْنِ قَبْلَ الْقَضَاءِ، ددې مثال دوې (دوه) شفيعو کې د يو شفعه ورکول دی.د قاضي د حکم نه وړاندې. وَنَظِيرُ الْأَوَّلِ اود اول مثال تَسْلِيمُهُ بَعْدَ الْقَضَاءِ دده شفعه ورکول دی.د قاضي د حکم نه پس.

تشريح: ذکر شوې حکم( چې پوره غلام به نه اخلی ) هغه وخت دې.کله چې يو مشتری د قاضي دفيصلې نه روسته نصف غلام اخستل ترك کړې وی.اوکه د قاضي د فيصلې نه وړاندې هغه اووئيل.چه زه نيم غلام نه اخلم.نو اوس به دوهم مشتری ته اختيار وی.چه پوره غلام واخلی.خکه چې هغه د پوره غلام مدعي دې.او تر اوسه پورې دده د دعوه سبب نه دې فسخ شوې.يعنی قاضي په نصف غلام کې دده اخستل نه دی فسخ کړی.ده ته چې کوم نيم غلام ملاويدلو.هغه صرف په دې وجه وو.چه هغې کې دوهم مشتری مزاحم ( او مقابل) دې.او اوس هغه به پاته پاتې نشو.نو پوره غلام اخستلې شی.ددې مثال دادې.چه په شفيعينو کې يو د قاضي د فيصلې نه وړاندې خپله شفعه پريخودله.نو دوهم شفيع کُل مکان په شفعه کې اخستلې شی.اوکه د قاضي د فيصلې نه روسته ئې پريښولو .نودا به د ړومبی صورت مثال وی.خکه چې اوس دوهم شفيع کُل مکان نشی اخستلې.

(وَلَوْ ذَكَرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تَارِيخًا او كه دوى كي هريو تاريخ ذكر كړو. فَهُوَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا) نو غلام به د رومبي تاريخ والا وى. لِأَنَّهُ أَثْبَتَ الشِّرَاءَ فِي زَمَانٍ خكه چي ده خپل اخستل داسي وخت كي ثابت كړى دى. لَا يُنَازِعُهُ فِيهِ أَحَدٌ چي دي كي هيڅ څوك مزاحم نشته. فَانْدَفَعَ الْآخَرُ بِهِ نو په دي سره دوهم دفع شو. (وَلَوْ وَقَّتَتْ إِحْدَاهُمَا او كه يوكس وخت بيان كړو. وَلَمْ تُوَقِّتِ الْأُخْرَى او دوهم كس بيان نكړو. فَهُوَ لِصَاحِبِ الْوَقْتِ) نو غلام به د تاريخ والا وى. لِثُبُوتِ مِلْكِهِ فِي ذَلِكَ الْوَقْتِ په دي تاريخ كي د ملك ثابتيدلو په وجه. وَاحْتَمَلَ الْآخَرُ أَنْ اود دوهم په اړه كي احتمال دي. يَكُونَ قَبْلَهُ ددي نه وړاندي أَوْ بَعْدَهُ يا روسته كيدلو كي. فَلَا يُقْضَى لَهُ بِالشَّكِّ نود شك په وجه به هغه لپاره حكم نشي كولي.

**تشريح:** اوكه د دواړو گواهانو د اخستلو تاريخ بيان كړو. نو شئ ( مدعى به) به وړاندي تاريخ والا ته ملاويږى. آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددي قائل دى. خكه چي ده خپل اخستل په داسي وخت كي ثابت كړى دى. چه په هغي كي دده هيڅ څوك مزاحم نشته. نو په دي دليل سره دويم( مدعى ) دفع شو.

(وَإِنْ لَمْ يَذْكُرَا تَارِيخًا او كه دواړو تارخ ذكر نكړو. وَمَعَ أَحَدِهِمَا اود يوكس قبضه ده. قَبْضٌ فَهُوَ أَوْلَى) نو هم دي اولى ( او راجح) دي. وَمَعْنَاهُ ددي مراد دادي. أَنَّهُ فِي يَدِهِ چي غلام دده په قبضه كي دي. لِأَنَّ تَمَكُّنَهُ مِنْ قَبْضِهِ خكه چي قبضه باندي دده قابو كيدل، يَدُلُّ عَلَى سَبْقِ شِرَائِهِ ددي په مخكي اخستلو باندي دلالت كوى. وَلِأَنَّهُمَا اسْتَوَيَا فِي الْإِثْبَاتِ او خكه چي دوى د دعوي اثبات كي برابر دي. فَلَا تُنْقَضُ الْيَدُ الثَّابِتَةُ بِالشَّكِّ نو ثابت قبضه به د شك په وجه نشي ماتولي. وَكَذَا لَوْ ذَكَرَ الْآخَرُ وَقْتًا لِمَا بَيَّنَّا. دغه ډول كه دوهم وخت ذكر كړو. ( نو هم دغه حكم دي) إِلَّا أَنْ يَشْهَدُوا البته كه گواهان دا گواهي وركړي. أَنَّ شِرَاءَهُ كَانَ قَبْلَ شِرَاءِ صَاحِبِ الْيَدِ چي دده اخستل د قابض د اخستلو نه وړاندي دى. لِأَنَّ الصَّرِيحَ يَفُوقُ الدَّلَالَةَ خكه چي صراحت ته په دلالت باندي فوقيت حاصل دي.

**تشريح:** اوكه دواړو هيڅ تاريخ بيان نكړو. او غلام مذكور د يو مدعى په قبضه كي دي. نو غلام به د قابض وى. خكه چي د قابض قبضه په رومبى اخستلو باندي دلالت كوى. او په دي وجه هم چي كله هغه د دعوه په اثبات كي برابر دى. نود كوم كس دعوه چي بالفعل ثابت ده. هغه به د شك په وجه نشي ماتولي. دغه ډول كه غيرقابض د خپل اخستلو تاريخ بيان نكړو. بيا هم د قابض قبضه بالفعل ثابت ده. هغه به د شك په وجه نشي ماتولي. دغه ډول كه غير قابض د خپلو اخستلو تاريخ بيان كړو. بيا به هم د قابض قبضه نشي ماتولي. خوكله چي دده گواهان دا گواهي وركړي. چه دده اخستل د قابض د اخستلو نه وړاندي دى. ( نود قابض قبضه به ماتولي شى ) خكه چي دلالت ته په وضاحت باندي فوقيت حاصل دي.

### د هبې مع القبض او اخستلو دعوې كونكو د گواهانو قائمولو حكم

قَالَ: (وَإِنِ ادَّعَى أَحَدُهُمَا شِرَاءً او كه په دوى كي يو كس د اخستلو دعوه اوكړله. وَالْآخَرُ هِبَةً وَقَبْضًا) او دوهم كس د هبه مع القبض ( دعوه اوكړله)، مَعْنَاهُ مِنْ وَاحِدٍ مطلب دادي. چه د يوسړي نه دواړو د اخستلو يا دهبه كاوه دعوه اوكړله. (وَأَقَامَا بَيِّنَةً او دواړو بينه قائم كړل. وَلَا تَارِيخَ مَعَهُمَا او تاريخ يوكس سره هم نشته. فَالشِّرَاءُ أَوْلَى) نو اخستل راجح دى. لِأَنَّ الشِّرَاءَ أَقْوَى خكه چي اخستل زيات مضبوط دى. لِكَوْنِهِ مُعَاوَضَةً مِنَ الْجَانِبَيْنِ، د دواړو طرفونو نه د معاوضه كيدلو په بناء باندي. وَلِأَنَّهُ يُثْبِتُ الْمِلْكَ بِنَفْسِهِ او ( بله داچه) دا پخپله مثبت د ملك دي. وَالْمِلْكُ فِي الْهِبَةِ يَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَبْضِ، او ملك هبه كي قبضه باندي موقوف وى. وَكَذَا الشِّرَاءُ وَالصَّدَقَةُ مَعَ الْقَبْضِ لِمَا بَيَّنَّا دغه ډول اخستل او صدقه مع القبض ده.

[illegible]شوى عبارت كي علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. كه يوكس دعوه اوكړله. چه ما دا شئ د زيد نه [illegible] وهم كس دعوه اوكړله. چه ماته دا شئ زيد هبه ( تحفه) راكړي دي. او دواړو گواهان قائم



كړل. خو هيڅ گواه تاريخ بيان نكړو. نود اخستلو دعوه به دهبه په دعوه باندي مقدم وى. خكه چي شراء بنفسه د ملكيت مثبت ده. په خلاف د هبه چي دا په قبضه باندي موقوف ده. او شراء د جانبينو د اړخه معاوضه ده. او هبه معاوضه نه ده.

(وَالْهِبَةُ وَالْقَبْضُ وَالصَّدَقَةُ مَعَ الْقَبْضِ سَوَاءٌ او هبه مع القبض او صدقه مع القبض برابر دى. حَتَّى يُقْضَى تردي چي (بَيْنَهُمَا) لِاسْتِوَائِهِمَا فِي وَجْهِ التَّبَرُّعِ، دوى كي د برابر كيدلو، د تبرع په طريقه كي د دواړو د برابر حكم اوكړي شى. وَلَا تَرْجِيحَ بِاللُّزُومِ او لزوم سره هيڅ ترجيح نشته. لِأَنَّهُ يَرْجِعُ إِلَى الْمَآلِ خكه چي دا مال اړخ ته راجع كيدلو په وجه، وَالتَّرْجِيحُ بِمَعْنًى او ترجيح په داسي معنى سره كيږي. قَائِمٍ فِي الْحَالِ، كومه چي في الحال قائمه وى.

**تشريح:** كه يوكس د هبه مع القبض، او دوهم د صدقه مع القبض دعوه اوكړله. نودا دواړه به برابر وى. تردي چي كه گواهان تاريخ بيان نكړى. نو په دي كي به حكم دا وى. چه دا شئ به د دواړو په منځ برابر مشترك وى. خكه چي د انعام او احسان په طور باندي كيدلو كي دواړه برابر دى. اود صدقه لازميدلو په وجه به هيڅ ترجيح نه وى. خكه لزوم خو د انجام په لحاظ سره دي. چه آخر كي به دا عقد لازم وى. حالانكه ترجيح په داسي معنى سره وى. كومه چي في الحال قائم وى. او په ابتدائي حال كي د هبه پشان صدقه هم لازمه نه وى.

(وَهَذَا فِيمَا لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ صَحِيحٌ، اودا حكم په ناقابل ويش څيزونو كي صحيح دي. وَكَذَا فِيمَا يَحْتَمِلُهَا عِنْدَ الْبَعْضِ او دغه ډول په قابل ويش څيزونو كي هم د بعضو په نيز (دا حكم صحيح دي). لِأَنَّ الشُّيُوعَ طَارِئٌ خكه چي شيوع خور( او راگيرونكي) دي. وَعِنْدَ الْبَعْضِ لَا يَصِحُّ او د بعضو په نيز صحيح نه دي. لِأَنَّهُ تَنْفِيذُ الْهِبَةِ فِي الشَّائِعِ خكه چي دا هبه په شائع كي نافذول دى. وَصَارَ كَإِقَامَةِ الْبَيِّنَتَيْنِ عَلَى الِارْتِهَانِ وَهَذَا أَصَحُّ.

**تشريح:** ذكور شوى حكم ( د نيم په نيمه فيصله) هغه څيزونو كي خو صحيح دي. كوم چي قابل ويش نه دى. لكه حمام اود اوبو جرنده( چي داني پكي اوړه كولي شى ). اود بعضو په نيز هغه څيزونو كي هم صحيح ده. كوم چي د تقسيمولو قابل دى. لكه كور او باغ، خكه چي د هبه شيوع خو روسته طارى ( پيدا) شوي دي. يعنى مخكي خو هغه د كُل عين مستحق شوى وو. خود دوهم مدعى مزاحمت سره هبه په نصف شائع كي پاتي شوه. اود بعض مشائخو په نيز صحيح نه ده. خكه چي دي كي د هبه مشاع تنفيذ لازميږى. حالانكه هبه مشاع يعنى د غيرمقسوم شئ نه صحيح كيږى.

قَالَ (وَإِذَا ادَّعَى أَحَدُهُمَا الشِّرَاءَ كه دعوه اوكړله يو كس د اخستلو، وَادَّعَتِ امْرَأَتُهُ أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا عَلَيْهِ و ښځي دعوه اوكړله. چه ده په دي( څيز) باندي زما سره واده ( نكاح) كړي ده فَهُمَا سَوَاءٌ) نو دا دواړه برابر دى. لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْقُوَّةِ په قوت كي د برابريدلو په وجه فَإِنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ خكه چي دوى كي هريو معاوضه ده. يُثْبِتُ الْمِلْكَ بِنَفْسِهِ كوم چي پخپله ملك ثابتوى. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ. (1) اودا د امام ابويوسف رحمه الله په نيز دى وَقَالَ مُحَمَّدٌ: الشِّرَاءُ أَوْلَى امام محمد رحمه الله فرمائي. چه اخستل راجح دى وَلَهَا عَلَى الزَّوْجِ الْقِيمَةُ او ښځي لپاره ميړه باندي قيمت دي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ الْعَمَلُ بِالْبَيِّنَتَيْنِ خكه چي دواړو بينه باندي عمل ممكن دي بِتَقْدِيمِ الشِّرَاءِ، د اخستلو په مقدم كاوه سره. إِذِ التَّزَوُّجُ عَلَى عَيْنٍ مَمْلُوكَةٍ لِلْغَيْرِ صَحِيحٌ خكه چي د غيرمملوك مال باندي نكاح كول صحيح دى. وَتَجِبُ قِيمَتُهُ عِنْدَ تَعَذُّرِ تَسْلِيمِهِ اود سپارلو متعذر كيدلو په وخت ددي قيمت واجبيږى

**تشريح:** د عمرو په قبضه كي يو غلام دي. زيد دعوه اوكړله. چه ما دا غلام دعمرو نه اخستي دي. او هندي دعوه اوكړله. چه عمرو دا غلام زما مقرر كړي دي. او ما سره ئي نكاح كړي ده. او دواړو گواهان قائم كړل. نو د

---

(1) القول الراجح هو قول أبى يوسف رحمه الله كذا فى الدرالمنتقى (۳\۳۷۶) وكنز (۲۸۲) وتنوير الأبصار(۱٤\٤۸۸) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۸٤)

دواړو دعوه او ګواهان به برابر وي. ځکه چې شراء (اخستل) او نکاح دواړه عقود معاوضه او بنفسه د ملکيت مثبت دي. نو په قوت کې دواړه برابر شو. د امام محمد رحمه الله په نيز د اخستلو دعوه اولى (او راجح) ده. يعنې د اخستلو حکم به ورکولې شي. او ښځې لپاره به خپل ميړه باندې ددې غلام قيمت واجب وي. ځکه چې دواړو ګواهانو باندې عمل ممکن دې. ځکه چې د غيرمملوك مال عين باندې نکاح کول جائز دي. او هرکله چې دا او ښځې سپارلې. نو د هغې قيمت به واجب وي. نودا خبره ممکن ده. چه ښځې لپاره ددې په ميړه باندې د غلام قيمت واجب کړې شي. او مشترى لپاره د اخستلو حکم ورکړې شي.

وَإِذَا ادَّعَى أَحَدُهُمَا که يوکس دعوه اوکړله. رَهْنًا وَقَبْضًا د رهن مع القبض وَالْآخَرُ هِبَةً وَقَبْضًا او دوهم د هبه مع القبض (دعوه اوکړله). وَأَقَامَا بَيِّنَةً او دواړو بينه قائم کړل. فَالرَّهْنُ أَوْلَى) نو رهن راجح دې. وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ، اودا استحسان دې. وَفِي الْقِيَاسِ الْهِبَةُ أَوْلَى قياس کې هبه راجح ده. لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الْمِلْكَ ځکه چې دا ملك ثابتوي. وَالرَّهْنُ لَا يُثْبِتُهُ. او رهن ملك نه ثابتوي. وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّ الْمَقْبُوضَ بِحُكْمِ الرَّهْنِ مَضْمُونٌ چې مقبوض په حکم د رهن سره مضمون وي. وَبِحُكْمِ الْهِبَةِ غَيْرُ مَضْمُونٍ او مقبوض په حکم د هبه مضمون نه وي. وَعَقْدُ الضَّمَانِ أَقْوَى. او عقدضمان زيات مضبوط وي. بِخِلَافِ الْهِبَةِ بِشَرْطِ الْعِوَضِ په خلاف د هبې په شرط د عوض. لِأَنَّهُ بَيْعٌ انْتِهَاءً ځکه چې دا انتهاء بيع وي. وَالْبَيْعُ أَوْلَى مِنَ الرَّهْنِ او بيع د رهن نه راجح ده. لِأَنَّهُ عَقْدُ ضَمَانٍ ځکه چې بيع عقد ضمان دې. يُثْبِتُ الْمِلْكَ صُورَةً وَمَعْنًى، کوم چې په ظاهر او باطن کې ملك ثابتوي. وَالرَّهْنُ لَا يُثْبِتُهُ او رهن ملك نه ثابتوي. إِلَّا عِنْدَ الْهَلَاكِ مَعْنًى خود تلف (ضائع) کيدلو په وخت صرف معنًى (ملك ثابتوي). لَا صُورَةً صورةً (ملك) نه ثابتوي. فَكَذَا الْهِبَةُ بِشَرْطِ الْعِوَضِ نوهم دغه ډول هبه په شرط د عوض ده.

**تشريح:** او که يوسړي د رهن مع القبض دعوه اوکړله او دوهم د هبه مع القبض دعوه اوکړله. نود رهن دعوه به اولى وي. خو استحساناً د قياس په رو سره د هبه دعوه اولى کيدل پکار دي. ځکه چې هبه د ملکيت ثابتونکې ده. او رهن ملکيت ثابتونکې نه دې. وجه د استحسان داده. چه مقبوض په حکم د رهن سره مضمون وي. او مقبوض په حکم د هبه سره مضمون نه وي. او عقد ضمان د عقد تبرع نه زيات مضبوط دي. نود رهن دعوه به اولى وي. خودا هغه وخت دي. کله چې د هبه بلاعوض دعوه وي. او که د هبه دعوه په شرط د عوض وي. نو بيا به د هبه دا دعوه اولى وي. ځکه چې هبه بشرط العوض انتهاءً بيع وي. او بيع د رهن نه اولى وي.

### په ملك او تاريخ باندې د دوو غير قبضه کونکو ګواهانو قائمول

(وَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجَانِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ وَالتَّارِيخِ که دوې (دوه) غير قابضانو په ملك او تاريخ باندې بينه قائم کړل. فَصَاحِبُ التَّارِيخِ الْأَقْدَمِ أَوْلَى) نود وړاندې تاريخ والا (بينه) راجح دي. لِأَنَّهُ أَثْبَتَ ځکه دوی ثابته کړله. أَنَّهُ أَوَّلُ الْمَالِكَيْنِ چې دې په دواړو مالکانو کې اول دې. فَلَا يَتَلَقَّى الْمِلْكَ إِلَّا مِنْ جِهَتِهِ نو ملك هم دده د اړخه حاصليدې شي. وَلَمْ يَتَلَقَّ الْآخَرُ مِنْهُ. حالانکه دوهم کس دده د اړخه نه دې حاصل کړې. قَالَ: (وَلَوِ ادَّعَيَا که دواړو دعوه اوکړله. الشِّرَاءَ مِنْ وَاحِدٍ) د اخستلو د يوسړي نه. مَعْنَاهُ مِنْ غَيْرِ صَاحِبِ الْيَدِ يعنې د غيرقابض نه. وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى تَارِيخَيْنِ او که دواړو په دوې (دوه) تاريخونو باندې بينه قائم کړل. فَالْأَوَّلُ أَوْلَى) د ړومبي تاريخ والا (بينه اولى او) راجح دي. لِمَا بَيَّنَّا ځکه موږ بيان کړل. أَنَّهُ أَثْبَتَهُ فِي وَقْتٍ چې ده اخستل داسې وخت کې ثابت کړل. لَا مُنَازِعَ لَهُ فِيهِ چې هغې کې دده هيڅ څوك مزاحم (او مقابل) نشته.

**تشريح:** يو مال عين د يو قابض په قبضه کې دې. په دې باندې دوې (دوه) مدعيانو د خپل خپل ملکيت دعوه اوکړله. يعنې وې وئيل چه دا شئ زما دې. اود اخستلو يا د ميراث وغيره هيڅ سبب نې بيان نکړو. البته د ملکيت تاريخ نې بيان کړو او هم ددې مطابق ګواهانو ګواهي ورکړله. مثلاً د يو (کس ګواهانو) د رمضان ۱۳۰۵ھ اوخودله. او د دويم (کس ګواهانو) د محرم ۱۳۰۴ھ اوخودله. نو حکم به ړومبي تاريخ والا [illegible]اره وي. ځکه چې ددې اول مالك کيدل ثابت شو. نو دوهم ته ملکيت هم دده د اړخه ملاويدې شي. حالانکه



ده دا دعوه نه ده کړې. چه ما د اخستلو يا د تحفه وغيره په ذريعه ملکيت دده د اړخه حاصل کړې دې. نو دده دعوه به مسترد کولې شي.

(وَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ او که هر يو بينه قائم کړل. عَلَى الشِّرَاءِ مِنْ آخَرَ بل نه په اخستلو باندې وَذَكَرَا تَارِيخًا) او که دواړو تاريخ ذکر کړو. فَهُمَا سَوَاءٌ نو دواړه برابر دي. لِأَنَّهُمَا يُثْبِتَانِ الْمِلْكَ لِبَائِعَيْهِمَا ځکه چې دوی د خپل خپل بائع لپاره ملك ثابتوي. فَيَصِيرُ نو داسې شوه. كَأَنَّهُمَا حَضَرَا چې دوی دواړو په يوځائې حاضر شو. ثُمَّ يُخَيَّرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بيا به هريو ته اختيار ورکولې شي. كَمَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ لکه څنګه چې موږ وړاندې ذکر کړل.

**تشريح:** اوکه په دوې (دوه) مدعيانو کې هريو د جلا جلا سړي (غيرقابض) نه اخستلو باندې ګواهان قائم کړل. مثلاً يو مدعى د زيد نه او دوهم د عمرو نه اخستلو باندې ګواهان قائم کړل. اودواړو يو تاريخ بيان کړو. نو دواړه به برابر وي. او اخستې شوې شئ به د دواړو په منځ کې برابر برابر تقسيميږي. ځکه چې دوی دواړه د خپل خپل بائع لپاره ملك ثابتوي. نودا داسې شوه. لکه چې دوی دواړه بائع موجود وي. او دعوه اوکړې. او دواړه يو تاريخ ذکر کړې.

(وَلَوْ وَقَّتَتْ إِحْدَى الْبَيِّنَتَيْنِ وَقْتًا او که د يو بينه وخت بيان کړو. وَلَمْ تُوَقِّتِ الْأُخْرَى دوهم بيان نکړو. قُضِيَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ) نو دواړو کې به د نصف نصف حکم ورکولې شي. لِأَنَّ تَوْقِيتَ إِحْدَاهُمَا ځکه چې د يوکس وخت بيانول لَا يَدُلُّ عَلَى تَقَدُّمِ الْمِلْكِ د ملك په تقدم (او وړاندې کيدلو) باندې دلالت نه کوي. لِجَوَازِ أَنْ يَكُونَ الْآخَرُ أَقْدَمَ ځکه ممکن ده. چه دوهم دده نه وړاندې وي. بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْبَائِعُ وَاحِدًا په خلاف ددې کله چې بائع يو وي. لِأَنَّهُمَا اتَّفَقَا عَلَى ځکه چې دوی دواړه په دې باندې متفق دي. أَنَّ الْمِلْكَ لَا يَتَلَقَّى إِلَّا مِنْ جِهَتِهِ، چې ملك نشي حاصليدلې. مګر هم دده (بائع) د طرفه. فَإِذَا أَثْبَتَ أَحَدُهُمَا تَارِيخًا نو هرکله چې يو تاريخ ثابت کړو. يُحْكَمُ بِهِ نو هغه لپاره به حکم ورکولې شي. حَتَّى يَتَبَيَّنَ ترديې چې دا ښکاره شي. أَنَّهُ تَقَدَّمَ شِرَاءُ غَيْرِهِ. چې د دوهم اخستل دده نه وړاندې دي.

**تشريح:** اوکه هم په دې مسئله کې دګواهانو يو فريق تاريخ بيان کړو. او دوهم فريق بيان نکړو. بيا به هم اخستې شوې شئ دواړو کې برابر وي. ځکه چې د يو فريق تاريخ بيانول ددې امر دليل نه دې. چې ملکيت دده لپاره وړاندې ثابت وو. ځکه ممکن ده. چه دوهم دده نه (د اخستلو په تاريخ کې) وړاندې وي. په خلاف ددې که د دواړو بائع يو سړې وي. چه په دې کې دا احتمال نشته. ځکه چې دواړه مدعيان په دې خبره متفق دي. چه د ملکيت حاصلول، هم ددې بائع دا اړخه ممکن دې. نو هرکله چې په دوی کې يو فريق تاريخ بيان کړو. نو حکم به دده لپاره کولې شي. تر کومه پورې چې دا خبره ښکاره نشي. چه د دوهم اخستل دده نه وړاندې واقع شوې دي.

وَلَوِ ادَّعَى أَحَدُهُمَا که يوکس دعوه اوکړله. الشِّرَاءَ مِنْ رَجُلٍ ديو کس نه د اخستلو، وَالْآخَرُ الْهِبَةَ وَالْقَبْضَ مِنْ غَيْرِهِ او دوهم کس دبل چا نه د هبه مع القبض دعوه اوکړله. وَالثَّالِثُ الْمِيرَاثَ مِنْ أَبِيهِ او دريم کس د خپل پلار د اړخه ميراث دعوه اوکړله. وَالرَّابِعُ الصَّدَقَةَ وَالْقَبْضَ مِنْ آخَرَ او څلورم کس د يوبل سړي نه د صدقه مع القبض دعوه اوکړله. قُضِيَ بَيْنَهُمْ أَرْبَاعًا) نو په دوی کې به د څلورې څلورمې برخې (حصې) حکم ورکولې شي. لِأَنَّهُمْ يَتَلَقَّوْنَ الْمِلْكَ مِنْ بَاعَتِهِمْ ځکه چې دوی واره د خپل خپل ملك نه د تحصيل علم مدعى دي. فَيُجْعَلُ نو داسې به ګرځولې شي. كَأَنَّهُمْ حَضَرُوا چې دوی څلور واره (مالکان) پخپله حاضر شو. وَأَقَامُوا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ او دوی په ملك مطلق باندې بينه قائم کړل.

**تشريح:** اوکه په دواړو کې يو د بائع نه د اخستلو، او دوهم په څه ملکيت سره د تحفه مع القبض، او دريم کس د خپل پلار نه د ميراث په حاصلولو، او څلورم کس د صدقه مع القبض دعوه اوکړله. نو په دې څلور واره کې

به د هر يو لپاره د ځلورمې برخې (حصې) حکم ورکولې شي. ځکه چې دوی کې هريو مدعى د خپل مالک د اړخه دملکيت حاصلولو مدعى دي. نو داسې شوه. لکه چې ګويا دوی ځلور واړه مالکان پخپله حاضر شوي دي. او پخپل خپل ملکيت باندې ئې ګواهان قائم کړي دي.

﴿قوله من باعتهم﴾ په بعض نسخو کې ،،من بائعهم،، دي. دا دواړه په طريقه د تغليب دي. ځکه چې ځلور واړه مالکانو کې بائع خو صرف يو دي. او په بعض نسخو کې ،،من ملقيهم دي. ﴿استدلالاً بلفظ يتلقون﴾

## د قابض او غير قابض په ملک مؤرخ او د تاريخ په تقدير باندې ګواهانو قائمولو حکم

قَالَ: وَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجُ الْبَيِّنَةَ عَلَى مِلْكٍ مُؤَرَّخٍ که غيرقابض په ملک مورخ باندې بينه قائم کړل. وَصَاحِبُ الْيَدِ بَيِّنَةً عَلَى مِلْكٍ او قابض (بينه قائم کړل) په داسې ملک باندې. أَقْدَمَ تَارِيخًا کوم چې د هغه د تاريخ نه وړاندې دې. كَانَ أَوْلَى نو قابض به اولى (او راجح) وي. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ (١) دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دي. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ. او هم دا د امام محمد رحمه الله نه يو روايت دې. وَعَنْهُ او دده نه روايت دادې. أَنَّهُ لَا تُقْبَلُ بَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ چې د قابض بينه به نه قبليږي. رَجَعَ إِلَيْهِ دوى هم دې اړخ ته رجوع کړې ده. لِأَنَّ الْبَيِّنَتَيْنِ قَامَتَا عَلَى مُطْلَقِ الْمِلْكِ ځکه چې دواړه بينه په مطلق ملک باندې قائم شوي دي. وَلَمْ يَتَعَرَّضَا لِجِهَةِ الْمِلْكِ او د ملک د سبب نه هيڅ يوکس تعرض نه دې کړې. فَكَانَ التَّقَدُّمُ وَالتَّأَخُّرُ سَوَاءً نو تقدم او تاخر برابر دې.

**تشريح:** په ذکرشوی عبارت کې علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه خارج سړې (غيرقابض) او قابض دواړو په ملک مورخ باندې ګواهان قائم کړل. او د قبضه کونکي تاريخ وړاندې دې. نو د شيخينو رحمهما الله په نيز به د قابض ګواهان مقدم وي. د امام محمد رحمه الله نه هم يو روايت دادې. خو ددې روايت نه ئې رجوع کړې ده. کوم روايت اړخ ته ئې چې رجوع کړې ده. هغه دا دې چه د قابض بينه به نه قبليږي. ځکه چې د دواړو ګواهان په ملک مطلق باندې قائم دي. او دوی د ملکيت اړخ ته هيڅ اعتراض نه دې کړې. نو تقدم او تاخر به برابر وي.

وَلَهُمَا شيخينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّ الْبَيِّنَةَ مَعَ التَّارِيخِ مُتَضَمِّنَةٌ مَعْنَى الدَّفْعِ، چې بينه سره د تاريخ نه د دفع معنى نه متضمن دې. فَإِنَّ الْمِلْكَ إِذَا ثَبَتَ لِشَخْصٍ فِي وَقْتٍ ځکه چې کله د يو سړي دپاره، په يو وخت کې ملک ثابت شو. فَثُبُوتُهُ لِغَيْرِهِ بَعْدَهُ لَا يَكُونُ نو ددې نه روسته غير لپاره ددې ثبوت ممکن نه دې. إِلَّا بِالتَّلَقِّي مِنْ جِهَتِهِ خو د (ملک ثبوت) دده د اړخه حاصلولو سره (کيداې شي). وَبَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ عَلَى الدَّفْعِ مَقْبُولَةٌ، او د قابض بينه (د خصومت) په دفع باندې قبليږي. وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ هم په دې اختلاف (مبنى) دې. لَوْ كَانَتِ الدَّارُ فِي أَيْدِيهِمَا که کور د دواړو په قبضه کې وي. وَالْمَعْنَى مَا بَيَّنَّا او وجه هم هغه ده. کومه چې موږ بيان کړله.

**تشريح:** د شيخينو رحمهما الله دليل دادې چه د قابض د تاريخ ګواهان معنى د خارج ګواهانو دفع کاوه ته متضمن دي. ځکه چې کله يو وخت کې دچا لپاره څه ملک ثابت شي. نو ددغه وخت نه روسته د دوهم کس لپاره دملک ثبوت هم دده د اړخه حاصلولو سره کيدلې شي. او د خصومت په دفع کاوه باندې د قابض ګواهان قبليږي. نود قابض ګواهان به وړاندې وي. دغه ډول که کور ددوی دواړو په قبضه کې وي. نو په دې کې هم اختلاف دې. او وجه هم هغه ده. کومه چې وړاندې ذکر شوه. چه د ړومبى د ملکيت نه روسته د دوهم کس ملکيت هم د هغه د اړخه حاصليدلې شي.

وَلَوْ أَقَامَ الْخَارِجُ وَذُو الْيَدِ الْبَيِّنَةَ عَلَى مِلْكٍ مُطْلَقٍ او که قابض او غيرقابض په ملک مطلق باندې بينه قائم کړل. وَوَقَّتَتْ

(١) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى الدرالمنتقى (٣٧٧\٣) وتنوير الأبصار(٤٩٠\١٤) وكنز الدقائق ص٢٨٣) نقلاً عن القول الراجح(١٨٥\٢)



إِحْدَاهُمَا او يوکس وخت بيان کړو. دُونَ الْأُخْرَى دوهم کس بيان نکړو. فَعَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ الْخَارِجُ أَوْلَى (١). نود طرفينو رحمهما الله په قول باندې غيرقابض اولى دي. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ. امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: او هم دا يو روايت دې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه. صَاحِبُ الْوَقْتِ أَوْلَى چې تاريخ والا اولى (او راجح) دې. لِأَنَّهُ أَقْدَمُ ځکه چې هغه مقدم دې. وَصَارَ او دا داسې شوه. كَمَا فِي دَعْوَى الشِّرَاءِ إِذَا أَرَّخَتْ إِحْدَاهُمَا لکه چې د اخستلو دعوه کې يوکس تاريخ بيان کړو. كَانَ صَاحِبُ التَّارِيخِ أَوْلَى. نو تاريخ والا به اولى وي.

**تشريح:** يو مدعى غيرقابض او دوهم مدعى قابض پخپل خپل ملکيت باندې ګواهان قائم کړل. او د يو مدعى ګواهانو تاريخ بيان کړو. او د دوهم کس ګواهانو تاريخ بيان نکړو. نود طرفينو رحمهما الله په نيز به غير قابض اولى وي. يعنى حکم به هم دده لپاره وي. د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوهم روايت (او هم دا د امام ابويوسف رحمه الله قول دې) دادې. چه د کوم کس تاريخ وړاندې دې. هم هغه اولى دې. ځکه چې هغه د دوهم نه وړاندې دې. بيا په کتاب کې د ﴿وقت احدهما﴾ قيد ځکه دې. که قابض او غيرقابض په ملکيت باندې د تاريخ ذکر کاوه نه بغير قائم کړې. نو عندالاحناف به بالاتفاق د قابض ګواهان قبلولې شي. ﴿فالاختلاف إنما هو عند ذكر التاريخ﴾

وَلَهُمَا د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّ بَيِّنَةَ ذِي الْيَدِ چې د قابض بينه إِنَّمَا تُقْبَلُ لِتَضَمُّنِهَا مَعْنَى الدَّفْعِ معنى دفع ته متضمن کيدلو په وجه قبليږي. وَلَا دَفْعَ هَاهُنَا او دلته هيڅ دفعيه نشته. حَيْثُ وَقَعَ الشَّكُّ فِي التَّلَقِّي مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې د مقدم ملک والا د اړخه د ملک په حصول کې شک دې. وَعَلَى هٰذَا هم په دې اختلاف (مبنى) دې. إِذَا كَانَتِ الدَّارُ فِي أَيْدِيهِمَا که کور د دواړو په قبضه کې وي.

**تشريح:** د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. چه د قابض ګواهان صرف په دې وجه قبلولې شي. چه هغه دفع کاوه ته متضمن وي. يعنى په دې سره د غيرقابض دعوه مخکې ختميږي. او دلته کې هيڅ دفعيه نشته. ځکه چې د کوم کس د ملکيت تاريخ واړاندې دې. د هغه د اړخه غيرقابض ته د ملکيت په حصول کې شک دې. چه کيداې شي. هغه د قابض نه ملکيت حاصل کړې وي. دغه ډول که دا کور ددوی دواړو په قبضه کې وي. بيا هم دا اختلاف دې.

وَلَوْ كَانَتْ فِي يَدِ ثَالِثٍ، او که د دريم کس په قبضه کې وي. الْمَسْأَلَةُ بِحَالِهَا او مسئله بحالہ (هم دا) وي. فَهُمَا سَوَاءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ. (٢) نو دواړه به برابر وي. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. الَّذِي وَقَّتَ چې کوم کس وخت بيان کړو. أَوْلَى. هغه اولى دې. وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائي. الَّذِي أَطْلَقَ چې کوم کس مطلق اوساتلو. أَوْلَى هغه اولى دې. لِأَنَّهُ ادَّعَى أَوَّلِيَّةَ الْمِلْكِ ځکه چې هغه د ملک د وړاندې والي مدعى دې. بِدَلِيلِ اسْتِحْقَاقِ الزَّوَائِدِ وَرُجُوعِ الْبَاعَةِ بَعْضِهِمْ عَلَى الْبَعْضِ د زياتي د استحقاق او دواړه بائعينو کې په بعض باندې د رجوع کاوه په دليل سره.

**تشريح:** او که کور د يو دريم کس په قبضه کې وي. او پاته مسئله په تيرشوی حالت باندې وي. يعنى د ملک مطلق په دعوه کې د يو غيرقابض ګواهان مؤرخ وي. د دوهم مؤرخ نه وي. بيا هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دواړه مدعيان برابر دي. د آئمه ثلاثه قول هم دا دې. امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چه تاريخ والا ګواهان به اولى وي. او د امام محمد رحمه الله په نيز کوم چې مطلق پريښودې دې. هغه به اولى وي. ځکه چې کوم کس تاريخ نه دې بيان کړې. هغه د ملک د اولويت مدعى دې.

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى البحر(٢٤٢\٧) والدرالمنتقى (٣٧٨\٣) وردالمحتار(٤٨٩\١٤) نقلاً عن القول الراجح(١٨٦\٢)

(٢) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (٥٨\٣) والدرالمنتقى (٣٧٨\٣) والوجيزللكردرى على هامش الهندية (٣٧١\٥) نقلاً عن القول الراجح(١٨٧\٢)

دا ددې دليل دادې چه كوم كس د ملكيت د مدعى وى.نو په دې مال سره چې كوم زياتى فوائد (او حواصل متصله او منفصله لكه اولاد او اكساب) حاصل شى.نو ددې مستحق به هم هغه وى.اودغه ډول كه دا شى چا خپل حق ثابت كړو.او واپس خستلو.نو روسته بيع كونكى خلګ به د خپل خپل بائع نه برابر ثمن واپس اخلى.معلومه شوه.چه ملكيت زيات مضبوط دې.

وَلِأَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.أَنَّ التَّارِيخَ يُوجِبُ الْمِلْكَ چې تاريخ ملك ثابتوى.فِي ذَلِكَ الْوَقْتِ يَقِينًا. هم په دې وخت سره،په يقين سره.وَالْإِطْلَاقُ يَحْتَمِلُ غَيْرَ الْأَوَّلِيَّةِ،او مطلق ساتل د ړومبى والى نه كيدلو احتمال لرى.وَالتَّرْجِيحُ بِالتَّيَقُّنِ،او ترجيح يقين سره كيږى.كَمَا لَوِ ادَّعَيَا الشِّرَاءَ.لكه كه دوى دواړه د اخستلو دعوه اوكړى.

تشريح: د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه كله تاريخ ذكر وى.نو ملك به باليقين هم هغه وخت نه ثابتيږى.اود ملكيت په دعوه كې دا احتمال شته.چه هغه اول نه وى.نو يقين ته به احتمال باندې ترجيح وى.لكه مثلاً په دوې (دوه) مدعيانو كې هر يو مدعى د اخستلو دعوه اوكړله.او پخپله خپله ګواهئ كې ئې تاريخ بيان كړو.نود كوم مدعى تاريخ چې وړاندې وى.هغه به اولى وى.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.أَنَّ التَّارِيخَ يُضَامُّهُ احْتِمَالُ عَدَمِ التَّقَدُّمِ چې تاريخ سره د عدم تقدم احتمال مزاحم دې.فَسَقَطَ اعْتِبَارُهُ نود تاريخ اعتبار ساقط شو فَصَارَ اودا داسې شوه.كَمَا لَوْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى مِلْكٍ مُطْلَقٍ لكه چې دواړو ملك مطلق باندې بينه قائم كړې دى.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه دلته دتاريخ په مزاحمت كې دا احتمال قائم دې.چه شايد (كيداې شى) دا وړاندې نه وى.يعنى د تاريخ د وخت نه ملكيت اګرچه يقينى دې.خود ملكيت مدعى نه دده مخكې كيدل يقينى نه دى.نود تاريخ اعتبار ختم شو.نو داسې پاتې شوه.لكه چې دواړو د تاريخ نه بغير ملكيت باندې ګواهان قائم كړې وى.او په دې كې د دواړو د برابر كيدلو حكم كيږى.نو دلته كې به هم دا حكم كيږى.

بِخِلَافِ الشِّرَاءِ په خلاف د اخستلو.لِأَنَّهُ أَمْرٌ حَادِثٌ ځكه چې دا امر حادث دې.فَيُضَافُ إِلَى أَقْرَبِ الْأَوْقَاتِ نو قريبى (او نيزدې) وخت اړخ ته به منسوب وى.فَيَتَرَجَّحُ جَانِبُ صَاحِبِ التَّارِيخِ نود تاريخ والا اړخ ته به ترجيح وركولې شى.

تشريح: ددې خانې نه د امام ابويوسف رحمه الله د دليل ﴿كما لو ادعيا الشراء .....﴾ ځواب دې.چه د شراء د دعوه په خلاف، يعنى كله چې يومدعى د مطلق مع تاريخ اخستلو،او دوهم كس د بغيرتاريخ اخستلو دعوه اوكړله.نو دلته كې تاريخ وړاندې دې.ځكه چې اخستل خو يو نوې فعل واقع شوې دې.اود تاريخ نه بغير به دا د ټولو نه نزدې وخت اړخ ته منسوب وى.نو تاريخ والا ته به په دې باندې ترجيح وى.مثلاً يو سړى په ۱۲۸۰ھ كې د خپل پلار نه يو اس په ميراث كې حاصل كړو.چه دا بل كس غلا كړو.او په ۱۲۸۰ھ كې ئې د زيد په لاس خرڅ كړو.نو دلته كې اخستل، د اصل مالك د ملكيت نه روسته واقع شو.اوس كه اصل مالك دا دعوه اوكړى.چه دا ما په ۱۲۸۰ھ كې په وراثت كې حاصل كړې دې.او زيد د تاريخ نه بغير دا اووائى.چه ما اخستې دې.نودا حكم به تاريخ والا لپاره وى.ځكه چې بيع كې خو دهغه نه يو ورځ روسته هم كيداې شى.

فائده:كله چې دوې (دوه) سړى د متعين شئ دعوه اوكړى.نودا به د درې حالتونو نه خالى نه وى.دعوه به يا د ملكيت وى.يا به داخستلو وى.او يا به د وراثت وى.په دوى كې دهر يو بيا درې صورتونه دى.متعين مال به په دوى كې د يوكس په قبضه كې وى.يا د دواړو او يا به د دريم كس په قبضه كې وى.په دې كې دهر يو بيا څلور صورتونه دى.دواړو به هيڅ تاريخ نه وى بيان كړې.يا به ئې يو شان تاريخ بيان كړې وى.يا به د يو تاريخ وړاندې اود دوهم روسته وى.يا به په دوى كې صرف يو مدعى تاريخ بيان كړې وى. دوهم به نه وى



بيان كړې.نودا شپږ ديرش(۳۶) صورتونه شو. ﴿وقد عرف ذالك ف موضعه﴾ (كفايه)

### د قابض اود غير قابض په زيږيدل باندې د ګواهانو قائمول

قَالَ (فَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجُ) كه بينه قائم كړل.قابض وَصَاحِبُ الْيَدِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً عَلَى النِّتَاجِ او غير قابض كې هر يو په زيږيدل زيږيدل باندې،فَصَاحِبُ الْيَدِ أَوْلَى)نو قابض اولى (او راجح) دې.

تشريح: په دې عبارت كې علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه خارج سړى (غير قابض) او قابض دواړو د ملكيت په داسې سبب باندې ګواهان قائم كړل.كوم چې بار بار نه واقع كيږى.يو ځل واقع كيږى.لكه نتاج يعنى د يو څاروى بچې پيدا كيدل، دمالوچو د كپړې جوړول، مالوچ ريشل (يعنى تار جوړول).شيدې لوشل ،پنير جوړول، وړئ تراشل، وغيره چې دا سببونه يو ځل كيږى.بار بار نه كيږى.اوس خارج سړى (غير قابض) او قابض دواړو په ګواهانو سره دا ثابته كړله.چه دا بچې زما د څاروى دې.او زما (يا زما د بائع يا د مورث) په ملكيت كې پيدا شوې دې.نود قابض ګواهان به معتبر وى.كه قابض خپل ګواهان د خارج په حق كې د قاضى د فيصلې كاوه نه روسته پيش كړې وى.او كه وړاندې پش كړې وى.امام مالك او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دى.اود امام شافعى رحمه الله اصح قول هم دادې.(د ابن ابى ليلى په نيز د خارجى سړى بينه اولى دى.) زموږ نقلى دليل په دار قطنى كې د جابربن عبدالله رضى الله عنه روايت دې چه،يوسړى د يوې اوښې دعوه اوكړله.او په ګواهانو سره ئې ثابته كړله.چه دا زما ده.زما سره پيدا شوې ده.قابض هم دغه ډول ګواهانو سره ثابته كړله.نو نبى كريم ﷺ اوښه قابض ته وركړله.،

لِأَنَّ الْبَيِّنَةَ قَامَتْ عَلَى ځكه چې بينه په هغه باندې قائم شوى دى.مَا لَا تَدُلُّ عَلَيْهِ په كوم چې قبضه دلالت نه كوى.فَاسْتَوَيَا،نو دواړه برابر شو.وَتَرَجَّحَتْ بَيِّنَةُ ذِي الْيَدِ بِالْيَدِ اود قابض بينه د قبضه په وجه راجح شو فَيُقْضَى لَهُ نو هم دده لپاره به حكم كولې شى.وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده.

تشريح: د احنافو دليل دادې.چه مذكوره ګواهى داسې شئ كې قائم شوې ده.چه په دې باندې قبضه دلالت نه كوى.نو ګواهئ كې دواړه برابر شو.بيا د قابض ګواهانو ته د قبضې په وجه ترجيح وركولې شى.هم دا صحيح ده.عام مشائخ هم دې اړخ ته تلى دى.عيسى بن ابان ددې خلاف دې.هغوى وائى.چه د دواړو ګواهان به ختميږى.اوپه كوم شئ كې چې جګړه ده.هغه به د قابض په قبضه كې هم په خپل حال پريخودلې شى.په حكم د قضاء به نشى پريخودلې.

خِلَافًا لِمَا په خلاف دهغې يَقُولُهُ عِيسَى بْنُ أَبَانَ كوم چې عيسى ابن ابان فرمائى.أَنَّهُ تَتَهَاتَرُ الْبَيِّنَتَانِ چې دواړه بينه به ساقطولې شى.وَيُتْرَكُ فِي يَدِهِ لَا عَلَى طَرِيقِ الْقَضَاءِ،او شئ به د قابض په قبضه كې د غير قضاء په طور باندې پريخودلې شى.

تشريح: په دې عبارت سره د عيسى بن ابان متعلق وضاحت دې.دا د اصولو د عالمانو څخه دې.او قابل اعتماد فقيه دې.د ابن مالك رحمه الله بيان دې.چه دا مخكې د اصحاب حديث څخه وو.بيا دوى باندې دخپلې رائې غلبه اوشوه.دوى علم فقه د امام محمد رحمه الله نه حاصل كړې ده.او په ۲۳۱ھ كې وفات شوې دې.

### د دوو ګواهانو په ملك او زيږيدل باندې ګواهان قائمول

وَلَوْ تَلَقَّى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْمِلْكَ كه په دوى دواړو كې هريو ملك حاصل كړو.مِنْ رَجُلٍ د يو سړى نه.أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى النِّتَاجِ عِنْدَهُ او بينه ئې قائم كړل.دده سره په پيدا كيدلو باندې.فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ إِقَامَتِهَا عَلَى النِّتَاجِ فِي يَدِ نَفْسِهِ نودا پخپله قبضه كې پيدا كيدلو باندې د بينه قائمولو پشان دى.(وَلَوْ أَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِلْكِ) كه يو په ملك باندې وَالْآخَرُ عَلَى النِّتَاجِ او دوهم په زيږيدل باندې بينه قائم كړل.فَصَاحِبُ النِّتَاجِ أَوْلَى نو زيږيدل والا به اولى وى.أَيُّهُمَا كَانَ چې څوك هم وى لِأَنَّ بَيِّنَتَهُ قَامَتْ عَلَى أَوَّلِيَّةِ الْمِلْكِ ځكه چې د هغه بينه د ملك په اوليت

باندې قائم دی. فَلَا يَثْبُتُ لِلْآخَرِ نو د بل لپاره به ملك نه ثابتيږي. إِلَّا بِالتَّلَقِّي مِنْ جِهَتِهِ خو دده د طرفه، وَكَذَلِكَ دغه دول إِذَا كَانَتِ الدَّعْوَى بَيْنَ خَارِجَيْنِ كه دعوه د دوو (دوه) غيرقابضانو په منځ كي وي. فَبَيِّنَةُ النِّتَاجِ أَوْلَى نو د زيږيدل بينه به اولى وي. لِمَا ذَكَرْنَا لكه ځنګه چې موږ ذكر كړل.

حل اللغة: ① تلقى تلقيا: موندل، ② نتاج: د ځاروو د بچي پيدا كيدلو وخت، ③ نسج: (ن، ض) كپړا جوړول ④ غزل (ض) ريشل، ⑤ قطن: مالوچ، ⑥ حلب (ن، ض) لوشل، ⑦ لبن: شيدې، ⑧ جبن: پنير، ⑨ لبد: لمځه: ⑩ ويخته، وړئ، ⑪ مرعزى: د چليي د بدن نرى ويخته، ⑫ جز: كټ كول، تراشل، ⑬ صوف: وړئ، ⑭ خز: د ريښمو او وړئ نه جوړه شوې كپړه، ⑮ غرس: ونه، بوټې لګول. حنطة: غنم، حبوب: (د حب جمع) دانه، خبرة: علم، تجربه،

تشريح: په دې عبارت كي علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. كه په قابض او غيرقابض كي هريو د يوسړي د اړخه د ملكيت د حصول دعوه اوكړله. او په دې امر ئې ګواهان قائم كړل. چه دا شئ دده سره دده د ملكيت والا شئ نه پيدا شوې دې. مثلاً د زيد په قبضه كي دا غلام دې. په دې باندې بكر دعوه اوكړله. چه ما دا غلام د خالد نه اخستې دې. كوم چې د خالد ملكيت كي د مملوكه وينځې نه پيدا شوې وو. او قابض (زيد) ګواهان قائم كړل. چه ما دا غلام د عمرو نه اخستې دې. كوم چې دده په ملكيت كي دده د مملوكه وينځې نه پيدا شوې وو. نو قابض ته به ترجيح وركولې شي. او حكم به دده لپاره كولې شي.

(وَلَوْ قَضَى بِالنِّتَاجِ لِصَاحِبِ الْيَدِ كه فيصله اوشوه. قابض لپاره په ذريعه د نتاج، ثُمَّ أَقَامَ ثَالِثٌ الْبَيِّنَةَ بيا ثالث دوباره بينه پيش كړل، عَلَى النِّتَاجِ د زيږيدل باندې. يُقْضَى لَهُ نو دده لپاره به حكم وركولې شي. إِلَّا أَنْ يُعِيدَهَا ذُو الْيَدِ) خودا چې قابض دوباره ګواهان پيش كړي. لِأَنَّ الثَّالِثَ لَمْ يَصِرْ مَقْضِيًّا عَلَيْهِ ځكه چې مدعى ثالث مقضى عليه نه دې شوې. بِتِلْكَ الْقَضِيَّةِ په دې قضيه سره.

تشريح: كه قابض لپاره د نتاج په ذريعه حكم وركړې شو. بيا دريم مدعى ګواهان قائم كړل. چه دا زما د مملوكه نه زما په ملك كي پيدا شوې دې. نود دريم لپاره به حكم وركولې شي. خودا چې قابض خپل ګواهان دوباره پيش كړي. ځكه چې قابض لپاره حكم كيدلو كي دريم مدعى فيصله كي داخل نشو. يعنى په ده دا حكم اونشو. چه دده دعوه خارج ده. دغه شان چې كوم سړې د مطلق ملكيت په دعوه كي مقضى عليه شي. يعنى هغه خارج كړې شي. او مدعى لپاره حكم اوكړې شي. بيا هغه نتاج باندې ګواهان قائم كړي. نو قبلولې به شي. او ددې په ذريعه به رومبې حكم ماتولې شي. ځكه چې د نتاج حكم په منزله د نص دې. او اول په منزله د اجتهاد شو. او مجتهد ته چې كله دده د اجتهاد خلاف نص ملاؤ شي. نو حكم اول ماتيږي. اود نص مطابق حكم كيږي. نوهم دغه ډول به دلته كي هم كولې شي.

وَكَذَا الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ بِالْمِلْكِ الْمُطْلَقِ دغه ډول په كوم كس چې د ملك مطلق حكم اوشو. إِذَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى النِّتَاجِ كه هغه په زيږيدل باندې بينه قائم كړي. تُقْبَلُ نو هغه به قبول وي. وَيُنْقَضُ الْقَضَاءُ او ددې په ذريعه به حكم اول ماتولې شي. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ النَّصِّ ځكه چې دا په منزله د نص او په منزله د اجتهاد دې. قَالَ (وَكَذَلِكَ النَّسْجُ فِي الثِّيَابِ الَّتِي دغه ډول د هغه كپړو جوړول دي. لَا تُنْسَجُ كوم چې نشي جوړولې إِلَّا مَرَّةً مګر يوځل. كَغَزْلِ الْقُطْنِ لكه د مالوچو د وړئ كيږي، (وَكَذَلِكَ كُلُّ سَبَبٍ فِي الْمِلْكِ دغه ډول د ملك په هرسبب كي، لَا يَتَكَرَّرُ) كوم چې نه مكرر كيږي. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى النِّتَاجِ ځكه چې دا د نتاج په معنى كي ده. كَحَلْبِ اللَّبَنِ لكه شيدې لوشل، وَاتِّخَاذِ الْجُبْنِ پنير جوړول، وَاللِّبْدِ وړئ لمځې جوړول، وَالْمِرْعِزَّى د ګډ نرى ايخته كټ كول، وَجَزِّ الصُّوفِ، وړئ كټ كول، وَإِنْ كَانَ يَتَكَرَّرُ او كه باربار كيږي. قُضِيَ بِهِ لِلْخَارِجِ نود غير قابض لپاره به حكم وركولې شي. بِمَنْزِلَةِ الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ پشان د ملك مطلق، وَهُوَ مِثْلُ الْخَزِّ لكه د وړئ كپړه جوړول، وَالْبِنَاءِ عمارت جوړول،



اوداد ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز ښكاره دې. لِأَنَّ هَلَاكَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ يَمْنَعُ التَّحَالُفَ عِنْدَهُمَا ځكه چې د معقودعليه هلاكيدل، ددوى په نيز تحالف نه مانع دې. وَكَذَا عَلَى أَصْلِ مُحَمَّدٍ او هم دغه ډول د امام محمد رحمه الله په اصل باندې هم (ښكاره دى) لِأَنَّ الْهَلَاكَ إِنَّمَا لَا يَمْنَعُ عِنْدَهُ فِي الْبَيْعِ لِمَا أَنَّ لَهُ قِيمَةً تَقُومُ مَقَامَهُ ځكه چې د معقودعليه هلاكيدلو سره د امام محمد رحمه الله په نيز بيع كي د تحالف غير ممتنع كيدل ځكه دى چه د مبيع قيمت د بيع قائم مقام وى. فَيَتَحَالَفَانِ عَلَيْهَا نو دوى دواړه به قيمت باندې قسم خورى.

تشريح: كه په اجاره كي د منافعو حاصلولو نه روسته دواړو اختلاف اوكړو. نو بالاجماع به دواړو نه قسم نشى اخستلې. بلكه دمستاجر قول به مع اليمين معتبر وى. د تحالف نه واجبيدل د شيخينو رحمهما الله په نيز خو ښكاره دې. ځكه چې كله معقود عليه معدوم شي. نو ددوى په نيز تحالف هم ممتنع كيږي. او دلته كي معقودعليه د منفعت وصولولو نه روسته پاتې نشو. په دې وجه دا وئيلې شي. چه اجاره كي معقودعليه هلاك او معدوم شو. اود امام محمد رحمه الله په اصل باندې هم عدم تحالف ښكاره دې. ځكه چې د امام محمد رحمه الله په نيز باندې مبيع كي تحالف نه ممتنع كيدل، په دې وجه دى. چه د مبيع قيمت وى. او قيمت د بيع قائم مقام وى. نود امام محمد رحمه الله په نيز بائع او مشترى دواړه به قيمت باندې تحالف كوى.

وَلَوْ جَرَى التَّحَالُفُ هَاهُنَا او كه دلته كي تحالف جارى شو. وَفُسِخَ الْعَقْدُ او عقد فسخ كړې شو. فَلَا قِيمَةَ نو هيڅ قيمت نشته. لِأَنَّ الْمَنَافِعَ لَا تَتَقَوَّمُ بِنَفْسِهَا ځكه چې منافع پخپله نه قائميږي. بَلْ بِالْعَقْدِ بلكه عقد سره قائميږي. وَتَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا عَقْدَ. اودا خبره ښكاره شوه. چه عقد نشته. وَإِذَا امْتَنَعَ او هركله چې تحالف ممتنع شو. فَالْقَوْلُ لِلْمُسْتَأْجِرِ مَعَ يَمِينِهِ نود مستاجر قول به مع اليمين معتبر وى. لِأَنَّهُ هُوَ الْمُسْتَحَقُّ عَلَيْهِ ځكه چې هم دې (مستاجر) مستحق عليه (مدعى عليه) دې.

تشريح: اوكه دلته اجاره كي تحالف جارى شو. اود تحالف نه روسته عقد اجاره فسخ كړې شوه. نود منافعو به هيڅ قيمت نه وى. ځكه چې منافع پخپله نه قائميږي. بلكه عقد سره قائميږي. اود فسخ كيدلو نه روسته دا خبره ښكاره شوه. چه عقد اجاره پاتې پاتې نشوه. او هركله چې عقد اجاره پاتې پاتې نشوه. نو دغه وخت به د منفعت هيڅ قيمت هم نه وى. بهرحال اجاره كي چې هركله نه منفعت موجود دې. او نه ددې قيمت موجود دې. نو تحالف به ممتنع وى. اوهركله چې تحالف ممتنع شو. نو د مستاجر قول به مع اليمين معتبر وى. ځكه چې مستاجر مستحق عليه (مدعى عليه) دې. يعنى ده باندې د زياتې اجرت دعوه ده. او هركله چې استحقاق كي اختلاف اوشو. نو هم د هغه سړى قول به معتبر وى. په كوم چې استحقاق ثابت كړې شى. يعنى د مدعى عليه.

## د بعضې منافع حاصلولو نه روسته اختلاف او د تحالف حكم

(وَإِنِ اخْتَلَفَا بَعْدَ اسْتِيفَاءِ بَعْضِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او كه د بعض معقود عليه حاصلولو نه روسته دواړو اختلاف اوكړو. تَحَالَفَا نو دواړه به قسم خورى. وَفُسِخَ الْعَقْدُ فِيمَا بَقِيَ او مابقى كي به عقد فسخ كولې شى. وَكَانَ الْقَوْلُ فِي الْمَاضِي قَوْلَ الْمُسْتَأْجِرِ) اود تيرې شوې زمانې اړه كي به د مستاجر قول معتبر وى.

تشريح: مسئله داده. كه په عقد اجاره كي د څه منافعو حاصلولو نه روسته موجر او مستاجر په اجرت كي اختلاف اوكړو. نود دواړو څخه به قسم اخستلې شى. او په مابقى كي به عقد اجاره فسخ كولې شى. اود تيره شوې زمانې په اړه كي به د مستاجر قول معتبر وى.

لِأَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ سَاعَةً فَسَاعَةً ځكه چې اجاره په لړه لړه منعقد كيږي. فَيَصِيرُ فِي كُلِّ جُزْءٍ مِنَ الْمَنْفَعَةِ نود منفعت په هرڅيز كي به داسې كيږي. كَأَنَّ ابْتِدَاءَ الْعَقْدِ عَلَيْهَا ګويا چې په ده باندې جديد عقد وارد شوې دې.

تشريح: دليل دادې. چه عقد اجاره په يوځل نه منعقد كيږي. نو داسې شوه. ګويا د منفعت هرڅيز باندې جديد

عقد وارد شوي دي.نو هغه منافع کومې چې پاتې پاتې شوې.د هغې په اعتبار سره به د معقود علیه حاصلولو نه وړاندې اختلاف وی.اود معقود علیه حاصلولو نه وړاندې باندې به تحالف جاري کیږي.او کوم منافع چې تیرې شوې.د هغې په اعتبار سره به د معقود علیه حاصلولو نه روسته اختلاف وی.اود معقود علیه حاصلولو نه روسته تحالف نه جاري کیږي.بلکه بالاتفاق د مستاجر قول قبلولې شی.نود تیرې شوو منافعو په حق کی به تحالف نه جاري کیږي.بلکه د مستاجر قول به قبلولې شی.

بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع، لِأَنَّ الْعَقْدَ فِيهِ دَفْعَةٌ وَاحِدَةٌ،ځکه چې دې کي عقد په یو ځل کیږي. فَإِذَا تَعَذَّرَ فِي الْبَعْضِ نو هرکله چې په بعض کي فسخ متعذر شوه. تَعَذَّرَ فِي الْكُلِّ نو په کُل کي متعذر شوه.

تشريح: ددې په خلاف بیع ده.چه په دې کي عقد په یوځل منعقد کیږي.نوکه مشتري په بعض مبیع باندې قبضه اوکړله.او هغه دده سره هلاک شو.نو په دې بعض کي عقد بیع فسخ متعذر شوه.او هرکله چې بعض مبیع کي عقد بیع فسخ کول متعذر شو.نود عقد یوکیدلو په وجه به کُل مبیع کي هم عقد فسخ کول هم متعذر کیږي.او هرکله چې په دې صورت کي عقد بیع فسخ کول متذر شو.نو په دې صورت کي به تحالف هم نه کیږي.ځکه چې د تحالف نتیجه فسخ کیدل دی.او هرکله چې فسخ ممکن پاتې نشوه.نو تحالف به هم ممکن نه وی.

## د مولی او مکاتب په مینځ کښې اختلاف او د تحالف حکم

قَالَ (وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمَوْلَى وَالْمُكَاتَبُ فِي مَالِ الْكِتَابَةِ) اوکه مولا او مکاتب په مال کتابت کي اختلاف اوکړو. لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ.[1] نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز تحالف نشته. وَقَالَا: او صاحبین رحمهما الله فرمائي. يَتَحَالَفَانِ چې دواړه به قسم خوري. وَتُفْسَخُ الْكِتَابَةُ) اوکتابت به فسخ کولې شی. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رحمه الله اوهم دا قول د امام شافعي رحمه الله دې.

تشريح: که مولا او مکاتب د بدل کتابت په مقدار کي اختلاف اوکړو.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دواړو باندې تحالف نه واجبیږي.بلکه د مکاتب قول به مع الیمین معتبر وی.او صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه تحالف به واجب وی.اود تحالف نه روسته به عقد کتابت فسخ کولې شی.هم دا قول د امام شافعي رحمه الله دې.

لِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ يَقْبَلُ الْفَسْخَ ځکه چې کتابت داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوی. فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ،نودا د بیع مشابه شو. وَالْجَامِعُ أَنَّ الْمَوْلَى يَدَّعِي بَدَلًا زَائِدًا يُنْكِرُهُ الْعَبْدُ او علت جامعه دادې.چه مولا د زیاتي بدل دعوه کوی.د کوم چې غلام منکر دې. وَالْعَبْدُ يَدَّعِي اسْتِحْقَاقَ الْعِتْقِ عَلَيْهِ عِنْدَ أَدَاءِ الْقَدْرِ الَّذِي يَدَّعِيهِ او مولا پخپل غلام باندې د عتق د استحقاق دعوه کوی.د هغه مقدار په ادا کاوه دکوم چې هغه مدعی دې وَالْمَوْلَى يُنْكِرُهُ او مولا د هغې منکردې. فَيَتَحَالَفَانِ كَمَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ. نو دواړه به قسم خوري.لکه څنګه چې کله دواړو په ثمن کي اختلاف کړې وی.

تشريح: دصاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه کتابت داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوی.نودا د بیع مشابه شو یعنی لکه څنګه چې بیع داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوی.دغه ډول کتابت داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوی.اود دواړو په منځ کي علت جامعه دادې.چه لکه څنګه بائع او مشتري د ثمن په مقدار کي اختلاف کوی.او بائع د ثمن د زیادت مدعی وی.او مشتري ددې منکر وی.او مشتري د خپل بیان شوی ثمن په عوض د مبیع د استحقاق دعوه کوی.او بائع ددې منکر وی.دغه ډول مولا د زیات بدل کتابت دعوه کوی.او مکاتب ددې منکر دې.او مکاتب پخپل مولا باندې ددغه مقدار په ادا کاوه باندې د عتق د استحقاق دعوه کوی.د کوم چې مکاتب مدعی دې.او مولا ددې منکر دې.نو ددې علت مشترکه په وجه لکه

[1] القول الراجح هو قول الإمام كذا في ملتقى الأبحر(۳\۳۶۶) ونتائج الأفكار(۷\۲۱۱۹) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۷۸)



څنګه چې د ثمن د اختلاف په صورت کي بائع او مشتري باندې تحالف واجبیږي.دغه ډول بدل کتابت کي د اختلاف په صورت کي به هم مولا او مکاتب دواړو باندې تحالف واجبیږي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. أَنَّ الْبَدَلَ مُقَابَلٌ بِفَكِّ الْحَجْرِ فِي حَقِّ الْيَدِ وَالتَّصَرُّفِ لِلْحَالِ چې بدل في الحال د قبضې او تصرف په حق کي د فك حجر( رکاوټ لرې کولو) مقابل دې. وَهُوَ سَالِمٌ لِلْعَبْدِ اودا د غلام لپاره سلامت دې. وَإِنَّمَا يَنْقَلِبُ مُقَابَلًا بِالْعِتْقِ عِنْدَ الْأَدَاءِ فَقَبْلَهُ لَا مُقَابَلَةَ اود بدل کتابت ادا کاوه په وخت به د آزادئ مقابل کي منقلب کیږي. فَبَقِيَ اخْتِلَافًا فِي قَدْرِ الْبَدَلِ لَا غَيْرُ نو صرف د بدل په مقدار کي اختلاف پاتې شو. فَلَا يَتَحَالَفَانِ نو دواړه به قسم نه خوري.

تشريح: د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه بدل کتابت في الحال دهغه رکاوټ لرې کاوه په مقابله کي دې.کوم چې د تصرف وغیره په سلسله کي مکاتب ته حاصل شوې دې.اود تصرف رکاوټ لرې کیدل مکاتب لپاره بدل کتابت کي داختلاف باوجود حاصل دې.ځکه چې مولا او مکاتب د کتابت په ثبوت باندې دواړه متفق دی.او بدل کتابت کي د آزادئ مقابل هغه وخت شو.کله چې بدل کتابت ادا کړی.نو حاصل داشو.چه د ادا نه وړاندې بدل کتابت د آزادئ مقابل وې.نود اداء نه وړاندې مکاتب آزادیدل پکار وو.حالانکه داسې نه ده.بهرحال هرکله چې هغه شئ یعنی د تصرف ممانعت لرې کیدل د بدل کتابت مقابل دی.او هغه مکاتب ته حاصل دې.نو اختلاف صرف د بدل کتابت په مقدار کي شو.ځکه چې دې وخت غلام مولا باندې د هیڅ شئ دعوه نه کوی.بلکه دې دهغه زیادت منکر دې.د کوم چې مولا مدعی دې.نو دلته کي مولا مدعی او مکاتب منکر شو.او په کوم صورت کي چې یو مدعی او بل منکر وی.په هغه صورت کي تحالف نه واجبیږي.بلکه د منکر قول معی الیمین قبلولې شی.نو دلته کي به هم تحالف نه واجبیږي.بلکه مکاتب کوم چې منکر دې.د هغه قول به مع الیمین معتبر وی.دا حکم هغه وخت دی.کله چې دواړو سره بینه نه وی.اوکه یوکس بینه پیش کړل.نود هغه بینه به قبلولې شی.اوکه دواړو بینه قائم کړل.نود مولا بینه به اولی وی.

## د ښځې او میړه د کور په سامان کښې د اختلاف مسئله

قَالَ (وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي مَتَاعِ الْبَيْتِ) اوکه ښځې او میړه د کور په سامان کي اختلاف اوکړو. فَمَا يَصْلُحُ لِلرِّجَالِ فَهُوَ لِلرَّجُلِ نو کوم شیان چې د سړو لائق(او مناسب)دی.هغه به د سړو لپاره وی. كَالْعِمَامَةِ) لکه عمامه (پګړی) لِأَنَّ الظَّاهِرَ شَاهِدٌ لَهُ ځکه چې ظاهر( ښکاره حال) دده شاهد دې. (وَمَا يَصْلُحُ لِلنِّسَاءِ فَهُوَ لِلْمَرْأَةِ كَالْوِقَايَةِ) اوکوم شیان چې د ښځو لائق دی.هغه به دښځې لپاره وی.لکه پټو (څادر) ( یعنی سرپیچك یا سر نړونې) لِشَهَادَةِ الظَّاهِرِ لَهَا ځکه چې ښکاره حال ددې شاهد دې.

تشريح: که ښځې او میړه دکور په سامان کي اختلاف اوکړو.چه دا سامان زما ملك دې. اوبینه دواړو سره موجود نه دی.نو کوم سامان چې د سړی مناسب دې.هغه سامان به قسم اخستلو سره سړی ته ورکولې شی.لکه عمامه (پګړئ)، توشیدې، کتابونه، قباء، کمان (لینده)،د جهاد سامان (وغیره). ځکه چې داسې قسمه سامان کي ښکاره حال د سړی شاهد دې.او په دعوو کي هم دهغه کس قول معتبر وی.د چا چې ښکاره حال شاهد وی.او کوم سامان چې د ښځو لائق وی.هغه سامان به قسم اخستلو سره ښځې ته ورکولې شی.لکه لوپټه پټو (څادر) برقعه، او زیورات (کالی) وغیره.ځکه چې دې کي ښکاره حال د ښځې شاهد دې.

(وَمَا يَصْلُحُ لَهُمَا كَالْآنِيَةِ اوکوم شیان چې د دواړو لائق دی.لکه لوخی ، فَهُوَ لِلرَّجُلِ )نو هغه سړی لپاره دی. لِأَنَّ الْمَرْأَةَ وَمَا فِي يَدِهَا فِي يَدِ الزَّوْجِ ځکه چې ښځه اوڅه چې ددې په قبضه کي دی.واړه د سړی په قبضه کي

دی. وَالْقَوْلُ فِي الدَّعَاوِيْ لِصَاحِبِ الْيَدِ، او په دعوو کې د قابض قول معتبر وي. بِخِلَافِ مَا يَخْتَصُّ بِهَا په خلاف د هغه څيزونو کوم چې ښځو سره خاص دي. لِأَنَّهُ يُعَارِضُهُ ظَاهِرٌ أَقْوَى مِنْهُ، ځکه چې ددې معارض ددې نه زيات قوي (او مضبوط) دې. وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ الْاِخْتِلَافُ فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ اوددا اختلاف که په دواړو کې د نکاح قائميدلو په حالت کې وي. أَوْ بَعْدَ مَا وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ اوکه د فرقت واقع کيدلو نه روسته وي. حکم کې هيڅ توپير نشته.

تشريح: او کوم سامان چې د دواړو مناسب دې. هغه به هم سړي ته ورکولې شي. ځکه چې د ښځې او سړي د قبضې ټولو شيان د سړي لپاره وي. او په دعوو کې د قابض قول معتبر وي. نو سړې کوم چې د ښځې او د ښځې په مقبوضه څيزونو باندې قابض دې. په ټولو کې به د سړي قول معتبر وي. کوم سامان چې ښځو سره مختص وي. هغه به ښځې لپاره ځکه وي. چه يو اړخ ته د ميړه ښکاره قبضه ده. او بل اړخ ته د ښځې قبضه ده. کومه چې ددې نه زياته مضبوطه ده. نود ښځې قبضه کومه چې زياده مضبوطه ده. هغې ته به ترجيح حاصل وي. لکه مثلاً دوې (دوه) سړو په يوه کپړه کې اختلاف اوکړو. او يو کس دا اغوستې ده. او دوهم ددې لستوڼي نيولي دی. نو کوم کس چې اغوستې ده. د هغه قول به معتبر وي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. که دا اختلاف د نکاح په موجودګۍ کې وي. يا د فرقت (اوجدائي) واقع کيدلو نه روسته وي. د دواړو په منځ کې حکم کې هيڅ توپير نشته.

### په زوجينو کښې د يو د مرګ نه روسته په ژوندي او وارثانو کښې اختلاف

(فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا نوکه په ښځې او ميړه کې يو کس مړ شو. وَاخْتَلَفَتْ وَرَثَتُهُ مَعَ الْآخَرِ او ددې مړي وارثانو د نورو سره اختلاف اوکړو. فَمَا يَصْلُحُ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ نو کوم څيزنه چې د سړو لائق دی. اود ښځو لائق دی. فَهُوَ لِلْبَاقِي مِنْهُمَا) هغه واړه به دوی کې ژوندي لپاره وي. لِأَنَّ الْيَدَ لِلْحَيِّ دُوْنَ الْمَيِّتِ، ځکه چې قبضه د ژوندي وي. د مړي نه وي. وَهٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَاهُ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ.[1]) اودا کوم څه چې موږ ذکر کړي دی. د ابوحنيفه رحمه الله قول دې. وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: او ابويوسف رحمه الله فرمائي. يَدْفَعُ إِلَى الْمَرْأَةِ مَا يُجَهَّزُ بِهِ مِثْلُهَا، چې هغه سامان به ښځې ته ورکولې شي. کوم چې دې د جهيز په طور (دخپل پلار د کوره د واده سامان) راوړلې دې. وَالْبَاقِيْ لِلزَّوْجِ مَعَ يَمِيْنِهِ او باقي (سامان) به قسم سره د ميړه لپاره وي. لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ الْمَرْأَةَ تَأْتِيْ بِالْجِهَازِ ځکه ښکاره داده. چه ښځې جهيز (په واده کې دپلار دکوره سامان) راوړي. وَهٰذَا أَقْوَى اودا قوی (او مضبوط) دې. فَيَبْطُلُ بِهِ ظَاهِرُ يَدِ الزَّوْجِ، ثُمَّ فِي الْبَاقِيْ لَا مُعَارِضَ لِظَاهِرِهِ نو ددې سره د ميړه د ظاهر (ښکاره حال) هيڅ معارض (او مقابل) نه دې. فَيُعْتَبَرُ نو هغه به معتبر وي. (وَالطَّلَاقُ وَالْمَوْتُ سَوَاءٌ) او طلاق او مرګ برابر دې. لِقِيَامِ الْوَرَثَةِ مَقَامَ مُوَرِّثِهِمْ ځکه چې وارثان د خپل مورث قائم مقام وي.

تشريح: که په زوجين (ښځه او خاوند) کې يوکس مړشو. او بيا د مړي وارثانو او ژوندي د سامان په اړه کې اختلاف اوکړو. نود کور واړه سامان به هغه کس لپاره وي. کوم چې ژوندې وي. که هغه سامان د سړو مناسب وي. اوکه د ښځو مناسب وي. ځکه چې قبضه د ژوندي سړي معتبر وي. د مړي معتبر نه وي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه مخکې کوم څه ذکرکړې شوی دی. هغه د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې. حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چه ښځې کوم سامان د جهيز په طور (د پلار د کوره) راوړلې دې. هغه سامان به ښځې ته ورکولې شي. او پاته سامان به ميړه نه قسم اخستلې شي. او ميړه ته به ورکولې شي. ځکه دا خبره ښکاره ده. چه ښځې جهيز راوړي. اودا ظاهر (ښکاره حال) د ميړه د ښکاره قبضې په نسبت زيات قوی دې. نو ددې

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٨٣\١) وشرح المجلة (٥٠٠\١٥) المادة (١٧٧١) نقلاً عن القول الراجح (١٨٠\١٢)



ظاهر په ذريعه به د ميړه ظاهري قبضه باطليږي. بيا کوم سامان چې پاته پاتې شو هغې کې چونکه د ميړه د ښکاره قبضې هيڅ معارض نشته. نو دده ښکاره قبضه به معتبر وي. اود حضرت امام ابويوسف رحمه الله په نيز طلاق او مرګ دواړه په حکم کې برابر دی. ځکه چې وارثان د خپل مورث قائم مقام وي. نو کوم حکم چې د مورث (مړي) وي. هم هغه حکم به دده د مورث وي.

(وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمائي. وَمَا كَانَ لِلرِّجَالِ فَهُوَ لِلرَّجُلِ، چې کوم سامان د سړو لائق وي. هغه به ميړه لپاره وي. وَمَا كَانَ لِلنِّسَاءِ فَهُوَ لِلْمَرْأَةِ، او کوم چې د ښځو لائق وي. هغه به ښځې لپاره وي. وَمَا يَكُوْنُ لَهُمَا فَهُوَ لِلرَّجُلِ او کوم چې د دواړو مناسب وي. هغه به د ميړه وي. أَوْ لِوَرَثَتِهِ) لِمَا قُلْنَا لِأَبِيْ حَنِيْفَةَ يا به دده د وارث وي. د هغه دليل په وجه کوم چې موږ د ابوحنيفه رحمه الله په حواله سره بيان کړې دې. (وَالطَّلَاقُ وَالْمَوْتُ سَوَاءٌ) او طلاق او مرګ دواړه برابر دی. لِقِيَامِ الْوَارِثِ مَقَامَ الْمُوَرِّثِ ځکه چې وارث د مورث قائم مقام دې.

تشريح: حضرت امام محمد رحمه الله فرمائي. چه کوم شيان د سړو مناسب دی. هغه به واړه د ميړه وي. او کوم شيان چې د ښځو سره مناسب وي. هغه به د ښځې وي. او کوم شيان چې د دواړو مناسب دی. هغه به د ميړه وي که ميړه ژوندې وي. او که ميړه مړ وي. نو دده د وراثانو به وي. او دليل هغه دې. کوم چې موږ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل بيان کړې دې. يعنی ښځه اود ښځې مقبوضه واړه شيان د ميړه په قبضه کې وي. او قول د قابض معتبر وي. په دې وجه دې څيزونو کې د ميړه يعنی د قابض قول معتبر وي. اود امام محمد رحمه الله په نيز هم طلاق اومرګ دواړه په حکم کې يوشان دی. ځکه چې وارث د خپل مورث قائم مقام دې.

(وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مَمْلُوْكًا اوکه په دوی دواړو کې کوم يوکس مملوك وي. فَالْمَتَاعُ لِلْحُرِّ فِيْ حَالَةِ الْحَيَاةِ) نو په حالت د ژوند کې به سامان ژوندي لپاره وي. لِأَنَّ يَدَ الْحُرِّ أَقْوَى (وَلِلْحَيِّ بَعْدَ الْمَمَاتِ) لِأَنَّهُ لَا يَدَ لِلْمَيِّتِ ځکه چې د آزاد قبضه پاتې نشوه. فَخَلَتْ يَدُ الْحَيِّ عَنِ الْمُعَارِضِ نود ژوندي قبضه د معارضه نه خالي وي. (وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ) اودا د ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی. وَقَالَا: او صاحبين رحمهما الله فرمائي. الْعَبْدُ الْمَأْذُوْنُ لَهُ فِي التِّجَارَةِ وَالْمُكَاتَبُ بِمَنْزِلَةِ الْحُرِّ) چې عبدماذون له فی التجارت او مکاتب د آزاد په مرتبه کې دې. لِأَنَّ لَهُمَا يَدًا مُعْتَبَرَةً فِي الْخُصُوْمَاتِ ځکه چې خصوماتو کې ددوی قبضه معتبر وي.

تشريح: اوکه په ښځه او ميړه کې يو مملوك وي. نو د کور پوره سامان به آزاد لپاره وي. په دې شرط چې دې ژوندې وي. ځکه چې د آزاد قبضه د مملوك په نسبت زياته مضبوطه ده. او دواړو کې د يو د مرګ نه روسته پوره سامان به هغه کس لپاره وي. کوم چې ژوندې دې. که آزاد وي. اوکه مملوك محجور (غيرماذون له) وي اوکه ماذون له وي. اوکه مکاتب وي. ځکه چې د مړي قبضه معتبر نه وي. نود ژوندي قبضه د معارضې (او مقابل) نه پاکه شوه. دا حکم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې. صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه غلام ماذون له فی التجارت او غلام مکاتب د آزاد په مرتبه کې وي. ځکه چې خصوماتو کې د دوی قبضه معتبر ده. تردې که د قاضی په مجلس کې يو آزادکس او يو مکاتب د خپل خپل ملکيت دعوه په داسې شئ کې دائر کړله په کوم چې د دواړو قبضه ده. اوکه دچا سره ګواه نه وي. نو د دواړو لپاره به برابر د نيمې نيمې برخې (حصې) حکم ورکولې شي. اوکه هغه شئ د يو ثالث (او دريم کس) په قبضه کې وي. او دواړو کې هر يو خپل خپل ګواه قائم کړل. نو بيا به هم دغه ډول د نيم نيم حکم وي. نو هرکله چې خصوماتو کې د مکاتب او ماذون قبضه معتبر ده. نو د کور په سامان کې به هم برابر معتبر وي.

[1]) القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا في الخانية (١٨٤\١) ونتائج الأفكار (٢٢٢\٧) وتنوير الأبصار (٤٨٢\٤) والدرالمنتقى (٣٦٩\٣) نقلاً عن القول الراجح (١٨٠\١٢)_

## فصل في من لايكون خصماً

ژباړه: (دا) فصل د هغه خلكو (په بيان كښ) دي. كوم چې خصم نشي كيدلې.

### د مدعی علیه په وديعت، رهن یا غصب باندې دعوی کول

(وَإِنْ قَالَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ هَذَا الشَّيْءُ أَوْدَعَنِيهِ فُلَانٌ الْغَائِبُ) او كله چې مدعى اووئيل. چه دا شيان فلانی غائب زما سره وديعت ايخودی دی. (أَوْ رَهَنَهُ عِنْدِي) يا ئې دا زما سره رهن ايخودې دی. (أَوْ غَصَبْتُهُ مِنْهُ) يا ما دهغه نه غصب كړې دی. (وَأَقَامَ بَيِّنَةً عَلَى ذَلِكَ) او هغه په دې باندې بينه قائم كړل. (فَلَا خُصُومَةَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمُدَّعِي) نو دده اود مدعى په منځ كې هيڅ خصومت نشته. وَكَذَا إِذَا قَالَ: او دغه ډول كله چې مدعى عليه اووئيل. آجَرَنِيهِ چې دا شئ ماته فلانی غائب اجازه باندې راكړې دې، وَأَقَامَ الْبَيِّنَةَ او بينه ئې قائم كړل. (نو خصومت به نه وی). لِأَنَّهُ أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ أَنَّ يَدَهُ لَيْسَتْ بِيَدِ خُصُومَةٍ خكه چې ده بينه سره دا خبره ثابته كړله. چه دده قبضه د خصومت قبضه نه ده.

تشريح: مسئله داده. چه يوسړی مثلاً عارف دعوه اوكړله. چه فلانې غلام كوم چې د واصف په قبضه كې دې زما ملك دې. يعنی زه ددې مالك يم. نو مدعى عليه قابض (واصف) اووئيل. چې دا غلام فلانی سړی كوم چې غائب دې. هغه وديعت ايخودې دې. يعنی زه امين يم. اومودع (بكسر الدال) كوم چې اصل مالك دې. هغه فی الحال په سفر كې تلې دې. يا ئې دا اووئيل. چه فلانی غائب سړی دا زما سره رهن ايخودې دې. يا ئې دا اووئيل. چه دا غلام ما هغه نه غصب كړې دې. ياني اووئيل. چه فلانی غائب دا غلام ئې ماته اجاره باندې راكړې دې. يا ئې ماته عاريةً راكړې دې. يا ئې ددې د ساتنه زه وكيل كړې يم. او مدعى عليه يعنی قابض پخپلو ذكر شوو اقوالو باندې بينهٔ قائم كړل. نو ددې قابض (مدعى عليه) او مدعى (عارف) په منځ كې به خصومت نه وی. يعنی قاضی به د مدعى ددې دعوه سماعت نه كوی. او دده څخه به د بينه وغيره مطالبه نه كوی.

۱ د ذكر شوو ټولو صورتونو دليل دادې. چه مدعى عليه (قابض) د بينه په ذريعه دا خبره ثابته كړې ده. چې زما قبضه د خصومت نه ده. او كوم سړې چې داسې وی. يعنی دا ثابتوی. چه زما قبضه د خصومت قبضه نه ده. نو هغه خصم نشی كيدې. نودا قابض به هم خصم نه وی.

وَقَالَ ابْنُ شُبْرُمَةَ: او ابن شبرمه رحمه الله فرمائی. لَا تَنْدَفِعُ الْخُصُومَةُ چې خصومت به نه دفع كيږی. لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ إِثْبَاتُ الْمِلْكِ لِلْغَائِبِ خكه چې غائب لپاره ملك ثابتول متعذر دی. لِعَدَمِ الْخَصْمِ عَنْهُ خكه چې هغه د اړخه هيڅ خصم نشته. وَدَفْعُ الْخُصُومَةِ بِنَاءٌ عَلَيْهِ. اود خصومت دفع كول هغه باندې مبنی وو. قُلْنَا: موږ ځواب وركوو. مُقْتَضَى الْبَيِّنَةِ شَيْئَانِ چې د بينه مقتضى دوې (دوه) شيان دی. ثُبُوتُ الْمِلْكِ لِلْغَائِبِ غائب لپاره ملك ثابتيدل، وَلَا خَصْمَ فِيهِ او په دې كې هيڅ ځوك خصم نه دې. فَلَمْ يَثْبُتْ. نود غائب ملك به نه ثابتيږی. وَدَفْعُ خُصُومَةِ الْمُدَّعِي اود مدعى خصومت دفع كيدل، وَهُوَ خَصْمٌ فِيهِ او هغه په دې كې خصم دې. فَيَثْبُتُ نودا دفع كول به ثابتيږی. وَهُوَ كَالْوَكِيلِ بِنَقْلِ الْمَرْأَةِ اودا داسې ده. لكه د ښځې منتقل كاوه وكيل، وَإِقَامَتِهَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الطَّلَاقِ كَمَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ. او دې ښځې په طلاق باندې بينه قائم كړل. لكه څنګه چې موږ ددې نه مخكې نه بيان كړې دی.

تشريح: ابن شبرمه يعنی عبدالله (چې د كوفې قاضی دې) فرمائی. چه د مدعى عليه (قابض) بينه قائمولو باوجود خصومت نه لرې كيږی. بلكه دې به د مدعى خصم وی. او قاضی به دده د مقدمې سماعت كوی. اودليل ددې دادې. چه قابض د بينه په ذريعه د غائب ملك ثابت كړې دې. حالانكه غائب لپاره ملك ثابتول متعذر دی. خكه چې قابض د غائب د اړخه خصم نه دې. خكه چې غائب د خپل ملك ثابتولو دپاره، قابض نه دې وكيل كړې. نو هركله چې غائب د خپل ملك ثابتولو دپاره، قابض نه دې وكيل كړې. نودا قابض به د غائب د اړخه خصم نه وی. او هركله چې قابض د غائب د اړخه خصم نه دې. نود غائب لپاره د ملك ثبوت د



خصم نه بغير شو. اود خصم نه بغير غائب لپاره د ملك ثبوت متعذر دې. خكه هيڅ چاته دا حق نشته. چه هغه يوڅيز د چا په ملك كې د هغه د رضامندئ نه بغير داخل كړی. بهرحال دا خبره ثابته شوه. چه دلته غائب لپاره ملك نه ثابتيږی. اود مدعى عليه (قابض) خصومت لرې كول، غائب لپاره ملك ثابتولو باندې مبنی وو. نو په متعذر چې كوم شيان مبنی وی. هغه به هم متعذر وی. په دې وجه قابض نه خصومت لرې كيدل به هم متعذر وی.

زموږ د اړخه ددې دليل ځواب دادې. چه د قابض پيش كړې شوی بينه د دوې (دوه) څيزونو تقاضه كوی. ① غائب لپاره ملك ثابتول، خو چونكه په دې كې ځوك خصم نه دې. خكه به غائب لپاره ملك نه ثابتيږی. ② دوهم داچه مدعى عليه يعنی قابض نه د مدعى عليه خصومت لرې شو. او په دې خبره كې مدعى عليه پخپله خصم دې. نود مدعى عليه (قابض) په حق كې به خصومت لرې كيدل ثابتيږی. ددې مثال دادې. چه د يوې ښځې د ميړه د اړخه يو كس وكيل شو. او راغئ. چه دې به دا ښځه خپل ميړه اړخ ته منتقل كوی. نو دې ښځې بينه پيش كړل. چه هغه ماته طلاق راكړې دې. نود ښځې په دې بينه سره اګرچه طلاق نه ثابتيږی. تركومه چې ميړه رانشی. كوم چې غائب دې. خود وكيل حق ختمولو لپاره به داګواهی قبلېږي شی. چه ددې بينه نه روسته به وكيل لپاره ددې ښځې منتقل كول جائز نه وی. ددې مثال پوره تفصيل په باب الوكالت بالخصومت كې تير شوې دی.

وَلَا تَنْدَفِعُ بِدُونِ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ كَمَا قَالَهُ ابْنُ أَبِي لَيْلَى اود بينه قائمولو نه بغير خصومت نه دفع كيږی. لكه څنګه چې ابن ابی ليلی رحمه الله فرمائيلی دی. لِأَنَّهُ صَارَ خَصْمًا بِظَاهِرِ يَدِهِ. خكه چې هغه د خپلې ظاهری قبضې په وجه خصم شوې دې. فَهُوَ بِإِقْرَارِهِ يُرِيدُ أَنْ يُحَوِّلَ حَقًّا مُسْتَحَقًّا عَلَى نَفْسِهِ نو هغه پخپل اقرار سره دا خبره غواړی. چه كوم حق په ده باندې واجب دې. هغه دې اوګرځوی. فَلَا يُصَدَّقُ إِلَّا بِالْحُجَّةِ، كَمَا إِذَا ادَّعَى تَحَوُّلَ الدَّيْنِ مِنْ ذِمَّتِهِ إِلَى ذِمَّةِ غَيْرِهِ. نو دده تصديق به نشی كولې. خو په حجت سره. لكه چې كله د خپلې ذمې نه د بل ذمې اړخ ته د دين ګرځولو دعوه اوكړی.

تشريح: قاضی ابن ابی ليلی رحمه الله فرمائی. چه د مدعى عليه (قابض) صرف په دې اقرار سره (چې دا غلام د فلانی غائب دې) خصومت لرې كيږی. اګرچه هغه بينه نه وی قائم كړې. غرض دا چې زموږ په نيز د بينه قائمولو نه بغير خصومت نه لرې كيږی. خود ابن ابی ليلی په نيز د بينه قائمولو نه بغير خصومت لرې كيږی.

۲ د ابن ابی ليلی دليل دادې. چه مدعى عليه (قابض) د غائب د ملك اقرار كړې دې. او اقرار پخپله ثابتوی. نو د قابض په اقرار سره دا خبره ثابته شوه. چه د غلام مالك غائب سړې دې. خود قابض قبضه د ساتنه په طور ده. او هركله چې صرف اقرار سره دغائب ملك ثابت شو. نود بينه پيش كاوه اړتيا نشته. بهرحال هركله چې د بينه نه بغير د غائب سړی ملك ثابت شو. نود قابض نه د بينه نه بغير خصومت هم لرې شو.

۳ علامه مرغينانی رحمه الله ددې خبرې په ځواب كې فرمائی. چه قابض د خپلې ښكاره قبضې په وجه خصم شو. نو هغه د خپلې ژبې اقرار سره دا غواړی. چه د مدعى كوم حق په ښكاره د هغه په ذمه لازم دې. هغه د خپل ذات نه اوګرځوی. اود غائب په ذمه ئې واچوی. نو هغه به پخپل دې اقرار كې متهم وی. اود متهم سړی د قول تصديق د حجت نه بغير نه كيږی. نو ددې قابض د قول تصديق به هم د حجت نه بغير نه كيږی. لكه مثلاً يو سړی د خپلې ذمې نه قرضه اوګرځوله. اود بل په ذمه ئې اچول اوغوښتل. مثلاً وې وئيل. چه ما ددې پور مطالبه په فلانی سړی باندې حواله كړې وه. نو ددې حواله كونكې د قول تصديق به د حجت نه بغير نه كيږی. دغه ډول دلته به هم د قابض د قول تصديق د حجت نه بغير نه كيږی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: او ابويوسف رحمه الله په آخر كې فرمائيلی دی. إِنْ كَانَ الرَّجُلُ صَالِحًا كه قابض صالح (نيكوكار) سړې وی. فَالْجَوَابُ كَمَا قُلْنَاهُ، نو حكم هغه دې. لكه څنګه چې موږ اووئيل. وَإِنْ كَانَ مَعْرُوفًا بِالْحِيَلِ

اوکه دا سړی په حیله بازۍ (چل بازۍ) کي مشهور وی. لَاتَنْدَفِعُ عَنْهُ الْخُصُوْمَةُ([1]) نو دده څخه به خصومت نه دفع کیږی. لِأَنَّ الْمُحْتَالَ مِنَ النَّاسِ قَدْ يَدْفَعُ مَالَهُ إِلَى مُسَافِرٍ يُوْدِعُهُ إِيَّاهُ څکه چې خلګو کي حیله باز کله کله خپل مال یومسافر ته ورکوی. چه دغه مسافر دا مال دده سره ودیعت کیږدی. وَيُشْهِدُ عَلَيْهِ الشُّهُوْدَ او په دې باندې ګواهان قائم کړی. فَيَحْتَالُ لِإِبْطَالِ حَقِّ غَيْرِهِ نو دا د بل حق باطلولو لپاره حیله کوی. فَإِذَا اتَّهَمَهُ الْقَاضِي بِهِ لَايَقْبَلُهُ نو کله چې دې متهم ګنړی. نو هغه به دده حجت نه قبلوی.

**تشریح:** د حضرت امام ابویوسف رحمه الله آخری قول دادې. که قابض څوك نیك او صالح سړی وی. نو ددې حکم هغه دې. کوم چې موږ بیان کړې دې. یعنی بینه قائمولو باندې به دده د ذمې نه خصومت لرې کیږی. اوکه دا سړی په حیله بازۍ کي مشهور وی. نو دده د ذمې څخه به خصومت نه لرې کیږی. اګرچه ده بینه قائم کړې وی. لکه څنګه چې ابن شبرمه وئیلی دی. څکه چې کوم سړې حیله باز وی. هغه کله په پټه باندې خپل مال یومسافر ته ورکوی. چه هم دا مسافر دده سره ښه په ښکاره طور باندې ودیعت ایږدی. او په دې باندې ګواهان مقرر کوی. اودا حیله ددې لپاره کوی. چه د بل کس یعنی د مدعی حق باطل شی. اود بینه په ذریعه هم دده لپاره خپل حق ثابتول ممکن پاتې نشی. نوهرکله چې قاضی قابض په حیله بازۍ کي متهم ګنړی. نو د هغه د اړخه به حجت نه قبلوی. صورت ددې دادې. چه مثلاً واصف حیله بازۍ او مکارۍ کي مشهور دې. او په ده باندې د نورو خلګو حقوق او دیون واجب دی. نو دغه قرضخواه او حقدار خلګ په ده باندې دمال دعوه کوی. او خپل حق حاصلوی. نوده دا حیله راویستله. چه ده خپل مال په پټه کوم یو مسافر ته ورکړو. او مسافر ګواهان راوغوښتل. او په ښکاره ئې دا مال ددې (واصف) سره ودیعت کیخودلو . یا ئې رهن کیخودلو. نو په دې سره دا فائده اوشوه. چه مسافر خو لاړلو. خو کله چې په قرضخواه په ده باندې دعوه کوی. نو دا حیله باز به هم دا ګواهان پیش کوی. چه دا زما مال نه دې. بلکه فلانی غائب زما سره ودیعت ایخودې دې. نو دې به د قرضخواهانو د خصومت نه خلاص شی. حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چه هرکله دا قابض په حیله بازۍ کي مشهور وی. او واړه خلګ ئې پیژنی. چه دا دهوکه باز دې. نو قاضی به ددې تهمت په وجه دده د ذمې نه خصومت نه لرې کوی. که قابض بینه قائم کړی. دا دې واضحه وی. چه مذکوره حکم هغه وخت دې. کله چې ګواهانو ددې مسافر نوم او نسب سره شناخت بیان کړې وی. او ګواهانو دا اووئیل. چه دې قابض سره داسې سړی ودیعت ایخودې دې. کوم چې موږ صرف په شکل یا نوم او نسب سره نه پیژنو. نو دا بالاجماع د قابض د ذمې نه خصومت نه لرې کوی.

① یو دلیل دادې. چه ډیره ممکن ده. چه ودیعت ایخودونکې هم دا مدعی وی. خو ګواهانو دې پیژندلې نه وی. ② دوهم دلیل دادې. چه قابض مدعی یو معین سړی اړخ ته نه دې حواله کړې. چه مدعی د هغه لټون اوکړی. او هغه پسې اولګی. نو که قابض نه خصومت لرې شو. نو مدعی ته به په دې سره ضرر رسیږی.

(وَلَوْقَالَ الشُّهُوْدُ: اوکه ګواهانو اووئیل أَوْدَعَهُ رَجُلٌ لَانَعْرِفُهُ چې ددې قابض سره یو داسې سړی ودیعت ایخودې دې. چه هغه موږ نه پیژنو. لَاتَنْدَفِعُ عَنْهُ الْخُصُوْمَةُ) دې سره به خصومت نه دفع کیږی. لِاحْتِمَالِ أَنْ يَكُوْنَ الْمُوْدِعُ هُوَ هٰذَا الْمُدَّعِي څکه احتمال دې. چه ودیعت ایخودونکې هم دا مدعی وی. وَلِأَنَّهُ مَا أَحَالَهُ إِلَى مُعَيَّنٍ يُمْكِنُ لِلْمُدَّعِي اتِّبَاعُهُ او څکه چې قابض مدعی یو معین سړی اړخ ته نه دې حواله کړې. چه مدعی لپاره هغه پسې ښلیدل ممکن وی. فَلَوِانْدَفَعَتْ او که خصومت دفع شو. لَتَضَرَّرَ بِهِ الْمُدَّعِي نو په دې سره به مدعی ته ضرر وی. وَلَوْ

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبی یوسف رحمه الله كذا فی نتائج الأفكار(۲۲۵\۷) وملتقى الأبحر(۳۷۰\۱۳) والدر المختار(٤٨٤\١٤) والبحرالرائق (۲۲۸\۷) ومجمع (۳۷۰\۱۳) نقلاً عن القول الراجح (۱۸۱\۱۲)



وَالْغُزُوْلِ ونه لګول، وَزِرَاعَةِ الْحِنْطَةِ وَالْحُبُوْبِ، د غنمو او دانو کرونده کول. فَإِنْ أَشْكَلَ بیا که مشتبه شو يُرْجَعُ إِلَى أَهْلِ الْخِبْرَةِ نو هوښیارو خلګو اړخ ته به رجوع کولې شی. لِأَنَّهُمْ أَعْرَفُ بِهِ، څکه چې هغوی په دې ښه پوهیږی. فَإِنْ أَشْكَلَ عَلَيْهِمْ که په هغوی هم مشتبه شی. قُضِيَ بِهِ لِلْخَارِجِ نود غیر قابض لپاره به حکم کولې شی. لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِبَيِّنَتِهِ هُوَ الْأَصْلُ څکه چې دده په بینه سره حکم کول اصل دی. وَالْعُدُوْلُ عَنْهُ بِخَبَرِ النِّتَاجِ، او ددې نه عدول د نتاج د خبر په وجه وو. فَإِذَا لَمْ يُعْلَمْ او هرکله چې دا معلومه نشوه. يُرْجَعُ إِلَى الْأَصْلِ. نو اصل اړخ ته به رجوع کولې شی.

**تشریح:** مثال دادې. چه د یوسړی په قبضه کي یو حیوان (څاروې) دې. دې باندې زید د مطلق ملکیت دعوه اوکړله. اوګواهان ئې قائم کړل. چه ددې په نتیجه کي حیوان (څاروې) زید ته ورکړې شو. نو هغه سړې مقضی علیه شو. دچا خلاف چې فیصله اوشوه. او زید مقضی له دې. دچا په حق کي فیصله شوې ده. اوس که قابض نتاج باندې ګواه قائم کړی. نو قبلولې به شی. اود زید لپاره چې کوم حکم شوې وو. هغه به ماتولې شی.

قَالَ (وَإِنْ أَقَامَ الْخَارِجُ الْبَيِّنَةَ که غیرقابض بینه قائم کړل عَلَى الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ په ملك مطلق باندې. وَصَاحِبُ الْيَدِ الْبَيِّنَةَ عَلَى الشِّرَاءِ مِنْهُ او قابض دده نه په اخستلو باندې (بینه قائم کړل). كَانَ صَاحِبُ الْيَدِ أَوْلَى) نود قابض بینه به اولی وی. لِأَنَّ الْأَوَّلَ څکه چې اول إِنْ كَانَ يَدَّعِي أَوَّلِيَّةَ الْمِلْكِ اګرچه د ملك اولویت ثابت کړې دې. فَهٰذَا تَلَقَّى مِنْهُ، خو قابض هم دده نه حاصلیدل ثابت کړی دی. وَفِي هٰذَا لَا تَنَافِي او په دې کي هیڅ منافات نشته. فَصَارَ نو داسې شوه. كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِالْمِلْكِ لَهُ لکه چې قابض د غیر لپاره د ملك اقرار کړې وی. ثُمَّ ادَّعَى الشِّرَاءَ مِنْهُ بیا ئې دده نه د اخستلو دعوه اوکړله.

**تشریح:** خارج سړی (غیرقابض) په مطلق ملکیت باندې ګواهان قائم کړل. او قابض په دې خبره (ګواهان قائم کړل) چې ما د خارج سړی نه اخستې دې. نود قابض ګواهان به معتبر وی. څکه چې خارج سړې رومبې ملکیت ثابتوی. او قابض د هغه نه ملکیت حاصلول ثابتوی. او په دې دواړو کي هیڅ توپیر نشته. نو داسې شوه. لکه چې قابض اول د غیر لپاره اقرار اوکړو. بیا ئې د هغه نه د اخستلو دعوه اوکړله.

## د دوو مدعیانو د یو بل نه په اخستلو باندې ګواه قائمول

قَالَ (وَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ که بینه قائم کړل په دوی کي هر یو، عَلَى الشِّرَاءِ مِنَ الْآخَرِ د بل نه په اخستلو باندې، وَلَا تَارِيخَ مَعَهُمَا او تاریخ دواړو سره نشته. تَهَاتَرَتِ الْبَيِّنَتَانِ نو دواړه بینه به پریخودلې شی. وَتُتْرَكُ الدَّارُ فِي يَدِ ذِي الْيَدِ) اوکور به د قابض په قبضه کي پریخودلې شی. قَالَ: علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوْسُفَ([1]) چې دا د شیخینو رحمهما الله په نیز دی. وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ د امام محمد رحمه الله په قول به يُقْضَى بِالْبَيِّنَتَيْنِ دواړو بینو باندې حکم کولې شی. وَيَكُوْنُ لِلْخَارِجِ او مال به غیرقابض لپاره وی. لِأَنَّ الْعَمَلَ بِهِمَا مُمْكِنٌ څکه چې دواړو باندې عمل ممکن دې. فَيُجْعَلُ نو داسې به ګرځولې شی. كَأَنَّهُ اشْتَرَى ذُو الْيَدِ مِنَ الْآخَرِ لکه چې قابض د دوهم نه اخستې وَقَبَضَ او قبضه کړې دې. ثُمَّ بَاعَ الدَّارَ بیا ئې دده په لاس نه دې خرڅ کړې. او قبضه ئې نه ده ورکړې. لِأَنَّ الْقَبْضَ دَلَالَةُ السَّبْقِ څکه چې قبضه د سبقت دلیل دې. عَلَى مَا مَرَّ لکه څنګه چې تیرشو. وَلَا يُعْكَسُ الْأَمْرُ او ددې په عکس به نشی کولې. لِأَنَّ الْبَيْعَ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يَجُوْزُ څکه چې د قبض نه وړاندې بیع جائز نه ده. وَإِنْ كَانَ فِي الْعَقَارِ عِنْدَهُ. اګرچه عقار (غیرمنقول) کي وی. د امام محمد رحمه الله په نیز.

---

[1] القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله كذا فی كنزالدقائق (ص،۲۸۳) وملتقى الأبحر(۳۸۱\۱۳) وتنویر الأبصار على هامش ردالمحتار(٤٩٠\١٤) ونتائج الأفكار(۲۵۵\۷) والهندیة (٧٧\١٤) نقلاً عن القول الراجح(۱۸۸\۱۲)

**تشریح:** د مذکوره مسئلې وضاحت دادې.که خارج سړی او قابض کې هر یو د بل نه اخستلو باندې ګواهان قائم کړل.یعنی خارج ثابته کړله.چه ما دا کور قابض نه اخستې دې.او قابض ثابته کړله.چه ما د خارج سړي نه اخستې دې.او تاریخ هیڅ یوکس سره هم نشته.نود شیخینو رحمهما الله په نیز به د دواړو ګواهان ساقط الاعتبار وی.اوکور به د قاضی د قضاء نه بغیر دمخکې پشان فی الحال هم دقابض په لاس کې پریخودلې شی.د امام محمد رحمه الله په نیز به دواړه بینې ( یعنی د دواړو ګواهان) قبلولې شی.اوکور به خارج سړی ته ورکولې شی.ځکه چې ګواهانو باندې په دې طریقه عمل کیدلې شی.چه ممکن ده.قابض د خارج سړي نه اخستې وی.بیا ئې د خارج سړي په لاس خرڅ کړې وی.او قبضه کړې ئې نه وی.ځکه چې قبضه د سبقت دلیل دې.او ددې په عکس به نشی کولې.ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نیز بیع د قبضې نه وړاندې جائز نه ده.اګرچه په عقار( غیرمنقول) کې وی.

> **وَلَهُمَا** شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.**أَنَّ الْإِقْدَامَ عَلَى الشِّرَاءِ** چې اخستلو باندې اقدام کول.**إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْمِلْكِ لِلْبَائِعِ** دده د اړخه اقرار دې.د بائع د ملك،**فَصَارَ** نو داسې شوه.**كَأَنَّهُمَا قَامَتَا عَلَى الْإِقْرَارَيْنِ** چې ګویا دواړه بینه د دواړو په اقرارونو باندې قائم شوې دی.**وَفِيهِ التَّهَاتُرُ بِالْإِجْمَاعِ**،او په داسې صورت کې ساقطیدل دی.بالاجماع به **كَذَا هَاهُنَا**،هم دغه ډول دلته کې کیږی.**وَلِأَنَّ السَّبَبَ يُرَادُ لِحُكْمِهِ** او ځکه چې د سبب اعتبار ددې د حکم په وجه کیږی.**وَهُوَ الْمِلْكُ** او هغه ملك دې.**وَلَا يُمْكِنُ الْقَضَاءُ لِذِي الْيَدِ** او دلته قابض لپاره حکم ممکن نه دې.**إِلَّا بِمِلْكٍ مُسْتَحَقٍّ** خو په ملك د مستحق سره.**فَبَقِيَ الْقَضَاءُ لَهُ بِمُجَرَّدِ السَّبَبِ** نو قابض لپاره حکم صرف سبب سره شو.**وَأَنَّهُ لَا يُفِيدُهُ**.چه دا هیڅ ګټور نه دې.

**تشریح:** په ذکر شوې مسئله باندې د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې.چه اخستلو باندې اقدام کول د بل د ملك اقرار کول دی.نو ګویا د هر سړي ګواهان د بل په اقرار باندې قائم شو.او په دې صورت کې د تعذر جمع کیدلو په وجه بالاجماع دواړه بینې ساقط الاعتبار جوړیږی.نو دلته به هم ساقط الاعتبار وی. دوهم دلیل دادې.چه د سبب اعتبار هغه وخت کیږی.کله چې هغه مفید د حکم وی.نو اخستل کوم چې سبب دې.د هغې اعتبار به هله کیږی.کله چې دا د حکم یعنی د ملکیت فائده ورکړی.او دلته قابض لپاره حکم ورکول ممکن نه دې.خو په ملك مستحق سره، یعنی په داسې ملك سره چې خارج سړې ددې مستحق دې.حالانکه دا غیرمفید دې.

> **ثُمَّ لَوْ شَهِدَتِ الْبَيِّنَتَانِ عَلَى نَقْدِ الثَّمَنِ** بیا که دواړه ګواهانو د ثمن په ادا کاوه ګواهی ورکړله.**فَالْأَلْفُ بِالْأَلْفِ قِصَاصٌ عِنْدَهُمَا** نود زرو زرو (ثمن) په عوض به خپل منځ کې بدله کولې شی.د شیخینو رحمهما الله په نیز **إِذَا اسْتَوَيَا** کله چې دواړه برابر وی.**لِوُجُودِ قَبْضٍ مَضْمُونٍ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ**،ځکه چې د هر یو د اړخه ضمانتی قبضه اوموندې شوه.**وَإِنْ لَمْ يَشْهَدُوا عَلَى نَقْدِ الثَّمَنِ** اوکه د ثمن په ادا کاوه باندې ئې ګواهی ورنکړله.**فَالْقِصَاصُ مَذْهَبُ مُحَمَّدٍ** نو خپل منځ کې بدله کول د امام محمد رحمه الله مذهب دې.**لِلْوُجُوبِ عِنْدَهُ**. د ثمن د وجوب په وجه ددوی په نیز. **وَلَوْ شَهِدَ الْفَرِيقَانِ بِالْبَيْعِ وَالْقَبْضِ** او که دواړه فریقو د بیع او قبضه ګواهی ورکړله.**تَهَاتَرَتَا بِالْإِجْمَاعِ**،نو اجماع سره به دواړه بینې ساقطولې شی.**لِأَنَّ الْجَمْعَ غَيْرُ مُمْكِنٍ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** ځکه چې د دواړو جمع کول ناممکن دی.د امام محمد رحمه الله په نیز هم، **لِجَوَازِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْبَيْعَيْنِ** د هر دواړه بیع جائز کیدلو په وجه **بِخِلَافِ الْأَوَّلِ** په خلاف د ړومبۍ مسئلې،

**تشریح:** بیا که د ګواهانو هر فریق د ثمن په ادا کاوه باندې ګواهی ورکړله.چه هر یو زر ( درهم وغیره) ثمن ادا کړو.نو هرکله چې دواړه ثمن د یو جنس او صفت وی.نود شیخینو رحمهما الله په نیز به خپل منځ کې بدلون اوشی.ځکه چې د هر یو د اړخه ضمانتی قبضه اوموندې شوه.اوکه دوی دا ګواهی ورنکړله.نو خپل منځ کې [illegible]ون کیدل، د امام محمد رحمه الله مذهب دې.ځکه چې هرکله دواړه ګواهیانو سره ثمن ثابت شو.نود امام



محمد رحمه الله په نیز بدله کیدل واجب شو.

> **وَإِنْ وَقَّتَتِ الْبَيِّنَتَانِ فِي الْعَقَارِ** او که دواړه بینو د بیع عقار تاریخ بیان کړو.**وَلَمْ تُثْبِتَا قَبْضًا** او قبضه ئې ثابت نکړله.**وَوَقْتُ الْخَارِجِ أَسْبَقُ** اود غیرقابض تاریخ وړاندې دې.**يُقْضَى لِصَاحِبِ الْيَدِ عِنْدَهُمَا** نود شیخینو رحمهما الله په نیز به حکم قابض لپاره کولې شی.**فَيُجْعَلُ** او داسې به ګڼړلې شی.**كَأَنَّ الْخَارِجَ اشْتَرَى أَوَّلًا** چې ګویا غیرقابض مخکې واخستلو،**ثُمَّ بَاعَ قَبْلَ الْقَبْضِ مِنْ صَاحِبِ الْيَدِ**،بیا ئې د قبضه کاوه نه وړاندې د قابض په لاس خرڅ کړو.**وَهُوَ جَائِزٌ فِي الْعَقَارِ عِنْدَهُمَا**[1] اودا د شیخینو رحمهما الله په نیز عقار کې جائزدی.**وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يُقْضَى لِلْخَارِجِ** اود امام محمد رحمه الله په نیز به غیرقابض لپاره حکم کولې شی.**لِأَنَّهُ لَا يَصِحُّ بَيْعُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ** ځکه چې دده په نیزد عقار بیع د قبضې نه وړاندې جائز نه ده.**فَبَقِيَ عَلَى مِلْكِهِ**،نو هغه د غیرقابض په ملك کې پاته پاتې شوه.**وَإِنْ أَثْبَتَا قَبْضًا** اوکه دواړه بینو په عقار کې قبضه هم ثابت کړله.**يُقْضَى لِصَاحِبِ الْيَدِ** نو قابض لپاره به حکم کولې شی.**لِأَنَّ الْبَيْعَيْنِ جَائِزَانِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ**،ځکه چې هر دواړه بیع جائز دی.په دواړه قولو باندې.**وَإِنْ كَانَ وَقْتُ صَاحِبِ الْيَدِ أَسْبَقَ** او هرکله چې د قابض تاریخ مقدم وی.**يُقْضَى لِلْخَارِجِ فِي الْوَجْهَيْنِ** نو حکم به د دواړو صورتونو کې غیر قابض لپاره وی.**فَيُجْعَلُ** او داسې به ګڼړلې شی.**كَأَنَّهُ اشْتَرَاهَا ذُو الْيَدِ** چې ګویا قابض دا اخستې دی.**وَقَبَضَ** او قبضه کړې ئې دی.**ثُمَّ بَاعَ** بیا ئې د غیر قابض په لاس خرڅ کړې دی.**وَلَمْ يُسَلِّمْ** او قبضه ئې نه ده ورکړی.**أَوْ سَلَّمَ** یا ئې قبضه ورکړې وه.**ثُمَّ وَصَلَ إِلَيْهِ بِسَبَبٍ آخَرَ** بیا دځه سبب په وجه دده په قبضه کې راورسیدلو.

### یو مدعی دوې (دوه) او بل خلور ګواهان قائم کړل

> **قَالَ**: **(وَإِنْ أَقَامَ أَحَدُ الْمُدَّعِيَيْنِ شَاهِدَيْنِ** که یو مدعی دوې (دوه) ګواهان پیش کړل.**وَالْآخَرُ أَرْبَعَةً** او دوهم کس خلور ( ګواهان پیش کړل). **فَهُمَا سَوَاءٌ)** نو دواړه برابر دی.**لِأَنَّ شَهَادَةَ كُلِّ الشَّاهِدَيْنِ عِلَّةٌ تَامَّةٌ** ځکه چې دوې (دوه) ګواهانو ګواهی پوره علت دې.**كَمَا فِي حَالَةِ الِانْفِرَادِ**،لکه څنګه چې حالتِ انفراد کې دی.**وَالتَّرْجِيحُ لَا يَقَعُ بِكَثْرَةِ الْعِلَلِ** او ترجیح کثرتِ علل سره نه کیږی.**بَلْ بِقُوَّةٍ فِيهَا عَلَى مَا عُرِفَ**.بلکه قوتِ علل سره کیږی.

**تشریح:** د ترجیح لپاره د زیاتو دلائلو اړتیا نه وی.بلکه د دلائلو قوی ( او مضبوط کیدل) ضروری دی.دې قول ته د فقهې د قانون په لحاظ سره د دلائلو په کثرت سره ترجیح نشی ورکولې..بلکه د دلائلو د قوت لحاظ کولې شی.هم ددې قانون لاندې صاحب دهدایه رحمه الله دا مسئله بیانوی.چه زمونږ په نیز د کثرت شهود په وجه ترجیح نشی ورکولې.مثلاً د یوکس دوې (دوه) ګواهان وی.اود بل څلور ګواهان وی.نود شهادت ( او ګواهانو) قائمولو کې به دوی دواړه برابر وی.د بعضو امامانو په نیز د امام شافعی رحمه الله په قول جدید کې ،او په نیز د امام مالك رحمه الله په قول مشهور کې او امام احمد رحمه الله ددې قائل دې.امام شافعی رحمه الله په یو قول کې او په یو روایت کې د امام مالك رحمه الله نه په زیاتی عدد کې به ترجیح ورکولې شی.

دغه ډول د عدالت د کمی زیاتی اعتبار به هم نشی کولې.په خلاف د امام مالك رحمه الله) وجه داده.چه د هر دوې (دوه) شاهدانو شهادت علتِ تامه دې.او ترجیح کثرتِ علل سره نه کیږی.بلکه قوت علل سره کیږی.مثلاً یو اړخ ته دلیل متواتر وی.او بل اړخ ته احاد وی.نو ترجیح به متواتر ته ورکولې شی.او داسې به نه کیږی.چه یو اړخ ته دوې (دوه) حدیثونه دی.او بل اړخ ته یو حدیث دې.نو دوې (دوه) حدیثونو اړخ ته به ترجیح ورکولې شی.دغه ډول یو اړخ ته دلیل مفسر وی. دوهم اړخ ته مجمل وی.نو مفسر ته به په مجمل باندې ترجیح ورکولې شی.وعلى هذا القياس،

---

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين ٥ كذا في ملتقى الأبحر(٣٨١\٣) وبحرالرائق (٢٤٦\٧) ومجمع الأنهر (٣٨١\٣) والدّرالمنتقى (٣٨١\٣) والهندية (٧٧\٤) نقلاً عن القول الراجح(١٨٩\٢)

قَالَ (وَإِذَا كَانَتْ دَارٌ فِي يَدِ رَجُلٍ) كه د يو سړي په قبضه كې كور وي. (ادَّعَاهَا اثْنَانِ) چې دهغې دعوه دوې (دوه) سړي اوكړي. (أَحَدُهُمَا جَمِيعَهَا وَالْآخَرُ نِصْفَهَا) يو د كُل او بل د نصف (دعوه اوكړي). (وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ) او دواړه بينه قائم كړي (فَلِصَاحِبِ الْجَمِيعِ ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهَا) نو كُل والا لپاره به ددې (كور) درې څلورمې برخې (حصې) وي. (وَلِصَاحِبِ النِّصْفِ رُبُعُهَا) او نصف والا لپاره به يوه څلورمه برخه وي. (عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)[1] (اعْتِبَارًا بِطَرِيقِ الْمُنَازَعَةِ) امام ابوحنيفه رحمه الله به نيز د منازعت د طريق په اعتبار سره. فَإِنَّ صَاحِبَ النِّصْفِ لَا يُنَازِعُ الْآخَرَ فِي النِّصْفِ ځكه چې مدعي د نصف دوهم مدعي سره منازعت نه كوي په نصف كې. فَسَلِمَ لَهُ بِلَا مُنَازِعٍ نو دا نصف دده لپاره د منازعت نه بغير سلامت پاتې شو وَاسْتَوَتْ مُنَازَعَتُهُمَا فِي النِّصْفِ الْآخَرِ او په پاتې نصف كې ددوى دواړو منازعت برابر دى. فَيُنَصَّفُ بَيْنَهُمَا نو په دواړو كې به نصف نصف كولې شى. (وَقَالَا) صاحبين رحمهما الله فرمائي. (هِيَ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا) چې كور به دوى دواړو كې درې برخې (حصې) كيږي. فَاعْتَبَرَا طَرِيقَ الْعَوْلِ وَالْمُضَارَبَةِ نو دوى د عول او مضاربت طريقه اختيار كړې ده. فَصَاحِبُ الْجَمِيعِ يَضْرِبُ بِكُلِّ حَقِّهِ سَهْمَيْنِ نود كُل مدعي به پخپل كُل حق سره د دوې (دوه) برخو وَصَاحِبُ النِّصْفِ بِسَهْمٍ وَاحِدٍ اود نصف مدعي به په يو برخه كې شريكولې شى. فَتُقْسَمُ أَثْلَاثًا نو كور به درې برخې (حصې) كولې شى. وَلِهَذِهِ الْمَسْأَلَةِ نَظَائِرُ وَأَضْدَادٌ او ددې مسئلې ډير مثالونه او اضداد دى. لَا يَحْتَمِلُهَا هَذَا الْمُخْتَصَرُ چې ددې گنجائش دا مختصر (قدورى) نشى لرلې. وَقَدْ ذَكَرْنَاهَا فِي الزِّيَادَاتِ. او موږ دا په زيادات كې ذكر كړې دى.

تشريح: يو كور د يو سړي په قبضه كې دې. ددې دوې (دوه) سړو دعوه اوكړله. يو د كُل مكان، او دوهم د نصف مكان، او دواړو گواهان قائم كړل. نو د امام صاحب رحمه الله په نيز به د منازعت په طريقه د كُل مدعي لپاره د مكان په څلورو حصو كې درې برخې (حصې) وي. اود نصف مدعي لپاره به څلورمه برخه وي. مطلب د ،،طريقه د منازعت،، دادې چه گله مدعي د نصف د نيم كور دعوه اوكړله. نو دويمه نيمه د كُل مدعي لپاره سلامت پاتې شوه. او په يو نصف كې د دواړو منازعت قائم پاتې شو. اودا نصف به د دواړو په منځ كې نيمولې شى. د صاحبينو مسلك دادې چه ددوى په نيز به د عول او مضاربت په طريقه كور اثلاثا تقسيمولې شى. يعنى د كُل مدعي لپاره به دوې (دوه) ثلثه (يعنى د دريو برخو دوې (دوه) حصې) وي. اود نصف مدعي لپاره به يو ثلث (يعنى دريمه حصه) وي. ځكه چې مسئله كې نصف اوكُل مجتمع دى. نو مسئله به د دوې (دوه) نه پيل كولې شى. ځكه چې د نصف مخرج دوه(٢) دې. اود دوې (دوه) عدد دريو اړخ ته عول كوى. نو دوې (دوه) برخې (حصې) به دكُل مدعي لپاره وي. او يوه برخه به د نصف مدعي لپاره وي.

قَالَ (وَلَوْ كَانَتْ فِي أَيْدِيهِمَا) اوكه كور د دواړه په قبضه كې وي. (سُلِّمَ لِصَاحِبِ الْجَمِيعِ) نو مدعي به د كل لپاره وي. (نِصْفُهَا عَلَى وَجْهِ الْقَضَاءِ) نيم په طريقه د قضاء. (وَنِصْفُهَا لَا عَلَى وَجْهِ الْقَضَاءِ) او نيم بلا قضاء. لِأَنَّهُ خَارِجٌ فِي النِّصْفِ ځكه چې هغه يو نصف كې غير قابض دې. فَيُقْضَى بِبَيِّنَتِهِ نو هم دده په بينه به حكم كولې شى. وَالنِّصْفُ الَّذِي فِي يَدِهِ صَاحِبُهُ او پاته نصف كوم چې پخپله دده په قبضه كې دى. لَا يَدَّعِيهِ دوهم ددې مدعي نه دې. لِأَنَّ مُدَّعَاهُ النِّصْفُ دده دعوه خو صرف نصف ده. وَهُوَ فِي يَدِهِ سَالِمٌ لَهُ، او هغه دده په قبضه كې سلامت ده. وَلَوْ لَمْ يَنْصَرِفْ إِلَيْهِ دَعْوَاهُ اود كُل دعوه به دې نصف اړخ ته نشى گرځولې. كَانَ ظَالِمًا بِإِمْسَاكِهِ نو هغه به ددې په منع كولو كې ظالم وي. وَلَا قَضَاءَ بِدُونِ الدَّعْوَى او (دا خبره هم واضحه ده) چې د دعوه نه بغير هيڅ فيصله نه كيږي. فَيُتْرَكُ فِي يَدِهِ په دې وجه به دده په قبضه كې پريخودلې شى.

[1] القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٣٨٣\٣) وردالمحتار(٤٩٠\١٤) ومجمع الأنهر(٣٨٣\٣) والدرالمنتقى (٣٨٣\٣) والبحر الرائق(٢٤٤\٧) نقلاً عن القول الراجح(١٩٠\٢)_



تشريح: اوكه دا كور د دواړو مدعيانو په قبضه كې وي. نو پوره مكان به د كُل مدعي لپاره وي. نيم په طريقه د قضاء او نيم بغير د قضاء نه. ځكه چې هركله كور د دواړو په قبضه كې دې. نود هر يو په قبضه كې نيم نيم كور شو. نو كوم نيم چې د كُل مدعي په قبضه كې دې. د هغې خو هيڅ څوك مدعي نشته. نو هغه د قاضي دقضاء نه بغير دهغه دې. او كوم نصف چې دنصف د مدعي په قبضه كې دې. د كُل مدعي د هغې (هم مدعي) دې. او هغه خارج سړي دې. اودا وړاندې معلوم شوى دى. چه د قابض سړي بينه معتبر وي. د خارج معتبر نه وي. نودا نصف به هم قاضي هغه ته وركوي.

د ويش څلور قسمونه دى. ① اول هغه په كوم كې چې ويش بالاتفاق د عول په طريقه كيږي. ددې اته صورتونه دى. (١) قسمت (٢) ميراث (٣) ديون (٤) وصيت (٥) محابات (٦) دراهم مرسله (٧) سعايت (٨) جنايت د رقيق. ② دوهم هغه كوم كې چې ويش بالاتفاق په طريقه د منازعت سره كيږي. او هغه د دوې (دوه) فضوليانو په مسئله كې كيږي. مثلاً يو فضولي په چا باندې يو غلام په زر درهم كې خرڅ كړو. او دوهم فضولي هم ددې غلام نصف دوهم كس باندې په پنځه سوه درهم خرڅ كړو. اوآقا دواړه بيع جائز اوساتلې. نو دواړو اخستونكو ته به اختيار وي. كه دوى اختسل غواړي. نود كُل مشترى دې درې ربعې (د څلورو برخو درې حصې) واخلي. اود نصف مشترى د يو ربع يعنى څلورمه برخه واخلي. ③ دريم هغه كوم كې چې ويش د امام صاحب رحمه الله په نيز د منازعت په طريقه كيږي. اود امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله په نيز په طريقه د عول كيږي. لكه څنگه چې په مسئله د كتاب كې پورته ذكر شو. (ددې نه علاوه دوې (دوه) مسئلې نورې هم دى). ④ څلورم هغه كوم كې چې ويش د امام صاحب رحمه الله په نيز په طريقه د عول كيږي. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز په طريقه د منازعت كيږي. دا طريقه په پنځه مسئلو كې جارى ده. كه د هر يو تشريح غواړې. نو د مطولات زيلعى، عينى، بحر وغيره اړخ ته رجوع اوكړه.

## په يو څاروي كښې د دوو سړو جګړه كول

قَالَ (وَإِذَا تَنَازَعَا فِي دَابَّةٍ) كه دوې (دوه) كسانو په يو څاروى كې جګړه اوكړله. (وَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً) وهر يو بينه قائم كړل. (أَنَّهَا نُتِجَتْ عِنْدَهُ، چې) دا زما سره (زما د څاروى نه) پيدا شوې دې. (وَذَكَرَا تَارِيخًا) او دواړو تاريخ ذكر كړو. (وَسِنُّ الدَّابَّةِ يُوَافِقُ أَحَدَ التَّارِيخَيْنِ) اود څاروى عمر (په دوى كې) د يو تاريخ موافق دې. (فَهُوَ أَوْلَى) نو هم هغه به اولى وي. لِأَنَّ الْحَالَ يَشْهَدُ لَهُ ځكه چې ښكاره حال ددې لپاره شاهد دې. فَيَتَرَجَّحُ نو هم دې ته به ترجيح وركولې شى. (وَإِنْ أَشْكَلَ ذَلِكَ) اوكه دا مشتبه شى. (كَانَتْ بَيْنَهُمَا) نو حيوان (څاروې) به دواړو كې مشترك وي. لِأَنَّهُ سَقَطَ التَّوْقِيتُ ځكه چې د تاريخ بيان ساقط شو. فَصَارَ نو داسې شوه. كَأَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا تَارِيخًا. گويا چې دواړو تاريخ بيان نكړو. وَإِنْ خَالَفَ سِنُّ الدَّابَّةِ الْوَقْتَيْنِ اوكه د څاروى عمر د دواړو تاريخونو خلاف وي. بَطَلَتِ الْبَيِّنَتَانِ، نو دواړه گواهان به ختميږي. كَذَا ذَكَرَهُ الْحَاكِمُ رَحِمَهُ اللهُ حاكم الشهيد هم دغه ډول ذكر كړې دى. لِأَنَّهُ ظَهَرَ كَذِبُ الْفَرِيقَيْنِ ځكه چې د فريقينو دروغ ښكاره شو. فَيُتْرَكُ فِي يَدِ مَنْ كَانَتْ فِي يَدِهِ. نو حيوان (څاروې) چې د كوم كس په قبضه كې دې. د هغه په قبضه كې به پريخودلې شى.

تشريح: په دې عبارت كې صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي. چه دوې (دوه) سړو د يو څاروى په اړه كې جګړه اوكړله. او دواړو پخپل خپل ملكيت كې د څاروى د بچى په پيدا كيدلو باندې گواهان قائم كړل. او دواړو تاريخ هم بيان كړو. نو ددې عمر چې د كوم مدعي تاريخ سره موافق وي. څاروې به هم هغه ته وركولې شى. ځكه چې ښكاره حالت د هغه په حق كې شاهد دې. اوكه ددوى بيان شوى تاريخونو په لحاظ سره ددې د عمر پته لګول مشكل وي. نو حيوان (څاروې) به د دواړو په منځ كې برابر وي. «لأن أحدهما ليس بأولى بها من الآخر» اوكه د څاروى عمر ددې دواړو تاريخونو نه مخالف وي. نو گواهان به باطل وي. لكه څنګه چې حاكم شهيد ذكر كړې دى. ځكه چې د دواړو گواهانو دروغ ښكاره شو. نو دا حيوان (څاروې) چې د كوم كس په

قبضه کې دی.هم دغه په قبضه کې به پريخودلې شي.د شيخ ابوالليث خوارزمي رحمه الله روايت هم دادې.قَالَ (وَإِذَا كَانَ عَبْدٌ فِي يَدِ رَجُلٍ)يو غلام د يوکس په قبضه کې دی. (أَقَامَ رَجُلَانِ عَلَيْهِ الْبَيِّنَةَ)په دې باندې دوو (دوه) کسانو بينه قائم کړل.(أَحَدُهُمَا بِغَصْبٍ)يو د غصب، (وَالْآخَرُ بِوَدِيعَةٍ)او دوهم کس د وديعت، (فَهُوَ بَيْنَهُمَا)نو غلام به دواړو کې برابر وی.لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الِاسْتِحْقَاقِ ځکه چې دوی دواړه برابر دی.

تشريح: يو څيز (غلام وغيره) د زيد په قبضه کې دی،عمرو ددې په اړه کې ګواهان قائم کړل،چه قابض دا زما نه په زبردستۍ اخستې دی.او بکر په ګواهانو سره دا ثابته کړله،چه ما دا شئ قابض ته د امانت په طور ورکړې دی.نو دوی دواړه به پخپلو خپلو دعوو کې برابر وی.اودا شئ به يوکس ته نشي ورکولې.بلکه په دوی کې به نصف نصف کولې شي. «لان الوديعة تصير غصبا بالجحود حتی يجب عليه الضمان».

## (فَصْلٌ فِي التَّنَازُعِ بِالْأَيْدِي)

ژباړه: (دا) فصل د قبضې په ذريعه د اختلاف کاوه (په بيان کې) دی.

تشريح: کوم ملك چې د بينه په ذريعه واقع کيږي.د هغې د بيان نه د فارغ کيدلو نه روسته په دې عبارت کې علامه مرغيناني رحمه الله هغه اختلاف بيانوي.کوم چې د ښکاره قبضې په بناء باندې وي.او اول ئې ځکه مقدم کړو،چه هغه زيات مضبوط دی،تردې چې کله ګواهان قائم شي.نو بيا ښکاره قبضې اړخ ته هيڅ توجه نشي ورکولې.

### د راکب او واګې نيونکې د ځاروي په قبضه کښې جګړه

قَالَ (وَإِذَا تَنَازَعَا فِي دَابَّةٍ)وکله چې جګړه اوکړله دواړو په يو ځاروی کې، (أَحَدُهُمَا رَاكِبُهَا چې)يو په دې باندې سور دی. (وَالْآخَرُ مُتَعَلِّقٌ بِلِجَامِهَا)و دوهم کس ددې واګې نيولې دی. (فَالرَّاكِبُ أَوْلَى)نو سور اولی (او راجح) دی.لِأَنَّ تَصَرُّفَهُ أَظْهَرُ ځکه چې ددې تصرف ډير ښکاره دی فَإِنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْمِلْكِ ځکه چې پسوريدل ملك سره مختص دی. (وَكَذَلِكَ إِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا رَاكِبًا فِي السَّرْجِ)دغه ډول که په دوی کې يو په زين (ګدۍ) سور وی. (وَالْآخَرُ رَدِيفُهُ)و دوهم په ده پسې شاته سور وی. (فَالرَّاكِبُ أَوْلَى)نو په زين باندې سور اولی دی.بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا رَاكِبَيْنِ په خلاف ددې که دوی دواړه سواره وی.حَيْثُ تَكُونُ بَيْنَهُمَا چې حيوان (ځاروی) به دوی دواړو کې برابر وی.لِاسْتِوَائِهِمَا فِي التَّصَرُّفِ ددوی دواړو په تصرف کی د برابرکيدلو په وجه. (وَكَذَا إِذَا تَنَازَعَا فِي بَعِيرٍ)دغه ډول که دوی جګړه اوکړی.په هغه اوښ کې (وَعَلَيْهِ حِمْلٌ لِأَحَدِهِمَا)په کوم چې د يوکس بوج بار دی.او د دوهم کس د اوبو لوخې (ګيلن وغيره) رازوړند دی. (فَصَاحِبُ الْحِمْلِ أَوْلَى)نود بوج والا به اولی وی.لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَصَرِّفُ ځکه چې هم هغه متصرف دی. (او راجح) (وَكَذَا إِذَا تَنَازَعَا فِي قَمِيصٍ أَحَدُهُمَا لَابِسُهُ)دغه ډول که جګړه اوکړی.په قميص کې چې دا يوکس اغوستې دی. (وَالْآخَرُ مُتَعَلِّقٌ بِكُمِّهِ)و دوهم کس ئې لستوڼې نيولې دی. (فَاللَّابِسُ أَوْلَى)نو اغوستونکې به اولی وی.لِأَنَّهُ أَظْهَرُهُمَا تَصَرُّفًا ځکه چې دواړوکې دده تصرف ډير ښکاره دی. (وَلَوْ تَنَازَعَا فِي بِسَاطٍ)که جګړه اوکړله (دواړو) په يوه بستره کې، (أَحَدُهُمَا جَالِسٌ عَلَيْهِ چې)يوکس ناست دی په دې باندې (وَالْآخَرُ مُتَعَلِّقٌ بِهِ)و دوهم کس دا نيولې ده. (فَهُوَ بَيْنَهُمَا)نودا په دوی دواړو کې مشترك ده.مَعْنَاهُ ددې مطلب دادی.لَا عَلَى طَرِيقِ الْقَضَاءِ چې دا په طريقه د قضاء نه ده.لِأَنَّ الْقُعُودَ لَيْسَ بِيَدٍ عَلَيْهِ ځکه چې کښينستل په دې باندې قبضه نه ده.فَاسْتَوَيَا.نو دواړه برابر شو.

حل اللغة: ايدی: د يد جمع ده په معنی د لاس، دابة: ځاروی، راکب: سور، لجام: واګې، سرج: زين، رديف: سور پسې شاته سورکس، بعير: اوښ، حمل: بوج، بار، کوز: لوښه (ګيلن، ټيکه)، قميص: کميص، لابس: اغوستونکې، کم: لستوڼې، بساط: بستره،



تشريح:په دې عبارت سره دا اختلاف د مثال په ذريعه بيانوي.زيد په يو اس باندې سور دی.او عمر ددې واګې نيولې دی.يا زيد په زين سور دی.او عمر هغه پسې شاته سور (رديف) دی.يا اوښ باندې د زيد بوج بار کړې شوې دی.اود عمرو لوښه (د اوبو لوخې) په دې باندې اويزان (رازوړند) دی.يا زيد کرته (کميص) اغوستې دی.او عمرو ددې لستوڼې نيولی دی.اوس په اس يا اوښ يا کرته (کميص) کې د دواړو جګړه ده.زيد وائي،چه زما دی.او عمرو وائي،چه زما دی.نو اس يا اوښ يا کرته به د زيد وی.ځکه چې ددې استعمال ښکاره دی. «لان الرکوب واللبس يختصان بالملك» بيا ځاروی باندې د سوريدلو مسئله د څلور واړو امامانو په نيز متفق عليه ده.او په زين باندې د ناست کس راجح کيدل په هغه روايت مبنی دی.کوم چې شيخ ناطفی په اجناس کې د نوادر معلی نه نقل کړې دی.په ظاهر الرواية کې به دا حيوان (ځاروی) دواړو کې نيم په نيمه وی. (غايه ، عنايه)

قَالَ: (وَإِذَا كَانَ ثَوْبٌ فِي يَدِ رَجُلٍ)که کپړه د يوکس په قبضه کې وی. (وَطَرَفٌ مِنْهُ فِي يَدِ آخَرَ)و ددې غاړه د دوهم کس په لاس کې وی. (فَهُوَ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ)نو دا به په دواړوکې نصف نصف وی.لِأَنَّ الزِّيَادَةَ مِنْ جِنْسِ الْحُجَّةِ ځکه چې د جنس زيادت د حجت (او دليل) څخنې دی.فَلَا تُوجِبُ زِيَادَةً فِي الِاسْتِحْقَاقِ نودا په استحقاق کې موجب د زيادت نه دی.

تشريح: يوه کپړه د يوکس په قبضه کې ده.او ددې غاړه د دوهم کس په لاس کې ده.نوهغه به ددوی دواړو په منځ کې نيم په نيمه وی.ځکه چې کوم کس په لاس کې زياته برخه ده.هغه هم د نيولو دليل دی.نو په دې سره څه زياتې حق نه ثابتيږی.ځکه چې د علت په کثرت سره ترجيح نشي ورکولې.

### په نابالغ بچي د ملك دعوی کولو مسئله

قَالَ: (وَإِذَا كَانَ صَبِيٌّ فِي يَدِ رَجُلٍ که ماشوم د يو سړی په قبضه کې وی.وَهُوَ يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ په داسې حال کې چې هغه د خپل ذات نه تعبير کولې شي.فَقَالَ:نوهغه (ماشوم) اوونيل.أَنَا حُرٌّ چې زه آزاد يم.فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ)نو هم دده قول به معتبر وی.لِأَنَّهُ فِي يَدِ نَفْسِهِ ځکه چې هغه پخپله ذاتی قبضه کې دی. (وَلَوْ قَالَ اوکه هغه اوونيل.أَنَا عَبْدٌ لِفُلَانٍ چې زه د فلانی غلام يم.فَهُوَ عَبْدٌ لِلَّذِي نو دی به دهغه کس غلام وی.هُوَ فِي يَدِهِ) چې د چا په قبضه کې دی.لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِأَنَّهُ لَا يَدَ لَهُ حَيْثُ أَقَرَّ بِالرِّقِّ (وَإِنْ كَانَ لَا يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ اوکه هغه د خپل ذات نه تعبير نشي کولې.فَهُوَ عَبْدٌ لِلَّذِي نو هغه به هم دده غلام وی.هُوَ فِي يَدِهِ)دچا په قبضه کې چې دی.لِأَنَّهُ لَا يَدَ لَهُ عَلَى نَفْسِهِ ځکه چې د هغه خپله ذاتی قبضه نشته.لَمَّا كَانَ لَا يُعَبِّرُ عَنْهَا ددې مطلب دادی،چه هغه پخپل ذات سره تعبير نشي کولې.وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمَتَاعِ،نو هغه په منزله د اسباب (او سامان) دی.بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ يُعَبِّرُ په خلاف ددې کله چې هغه تعبير کولې شي.فَلَوْ كَبِرَ بيا که هغه بالغ شي.وَادَّعَى الْحُرِّيَّةَ اود آزادۍ دعوه اوکړی.لَا يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ بيا به هم د هغه قول معتبر نه وی.لِأَنَّهُ ظَهَرَ الرِّقُّ عَلَيْهِ فِي حَالِ صِغَرِهِ ځکه چې د ماشوموالی حالت کې په ده باندې رقيت ښکاره شو.

تشريح: د يو سړی سره يو ماشوم (بچې) دی،چه هوښيار (سمجدار) دی،خپل حال بيانولې شي.هغه وائي،چه زه آزاد يم.او قابض ددې منکر دی.نود بچی قول به معتبر وی. «لانه فی يد نفسه» او که ماشوم دا اووائي،چه زه د فلانی غلام يم.او قابض دا اووائي،چه دا زما غلام دی.نود قابض غلام به ګرځولې شي.ځکه چې ده پخپله ځان ته د بل غلام اوونيل.اود خپلې غلامۍ اقرار ئې اوکړو.چه په دې سره دده خپله قبضه ختمه شوه.
سوال:دلته يو سوال دی،چه د غلامۍ اقرار نقصان ده دی،اود بچی په حق کې د هغه اقوالو هيڅ اعتبار نه کيږی.کوم چې نقصان ده وی.لکه څنګه چې د بچی طلاق ورکول، آزادول، تحفه ورکول صحيح نه دی.اګرچه هغه عاقل وی.بيا دلته کې دده دا اقرار څنګه صحيح کيدای شي؟

جواب: دلته د غلامۍ ثبوت د قابض د دعوه په وجه دې، د بچي د اقرار په وجه نه دې.

### دېوال به د شهتير د مالک او د متصل عمارت مالک وي

قَالَ: (وَإِذَا كَانَ الْحَائِطُ لِرَجُلٍ) دیوکس دیوال دې، عَلَيْهِ جُذُوعٌ چې د يوسرې په دې باندې شهتير دې، أَوْ مُتَّصِلٌ بِبِنَائِهِ يا هغه دده عمارت سره متصل دې، وَلِلْآخَرِ عَلَيْهِ هَرَادِيُّ اود دوهم په دې باندې ډاګې دې، فَهُوَ لِصَاحِبِ الْجُذُوعِ نو ديوال د شهتير والا، وَالِاتِّصَالِ، او د هغه کس دې، دچا چې عمارت متصل دې. وَالْهَرَادِيُّ لَيْسَتْ بِشَيْءٍ) او ډاګې هيڅ شئ نه دي. لِأَنَّ صَاحِبَ الْجُذُوعِ صَاحِبُ اسْتِعْمَالٍ خکه چې شهتير والا استعمال والا دې. وَالْآخَرُ صَاحِبُ تَعَلُّقٍ او دوهم د تعلق والا دې. فَصَارَ كَدَابَّةٍ تَنَازَعَا فِيهَا نو په داسې څاروي کې جګړه کونکې شو. وَلِأَحَدِهِمَا حِمْلٌ عَلَيْهَا چې هغې باندې د يوکس بوج اچولې شوې (بار) دې. وَلِلْآخَرِ كُوزٌ مُعَلَّقٌ بِهَا، او د دوهم د اوبو لوښې (دې څاروي ته) راځوړند دې. وَالْمُرَادُ بِالِاتِّصَالِ او مراد ملاويدلو سره دادې. مُدَاخَلَةُ لَبِنِ جِدَارِهِ فِيهِ چې ددې ديوال خښتې په هغه عمارت کې، وَلَبِنِ هَذَا فِي جِدَارِهِ او د هغه عمارت خښتې په دې ديوال کې مولښتې دي. وَقَدْ يُسَمَّى اتِّصَالَ تَرْبِيعٍ، چې دې ته اتصال تربيع (کنډلې شوې ديوال) هم وائي. وَهَذَا شَاهِدٌ ظَاهِرٌ لِصَاحِبِهِ او دا د عمارت لپاره ښکاره شاهد دې. لِأَنَّ بَعْضَ بِنَائِهِ عَلَى بَعْضِ بِنَاءِ هَذَا الْحَائِطِ. خکه چې دده څه عمارت ددې ديوال په جزء کې دی. وَقَوْلُهُ الْهَرَادِيُّ لَيْسَتْ بِشَيْءٍ او «الهراوی ليس بشئ» وئيل يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَا اعْتِبَارَ لِلْهَرَادِيِّ أَصْلًا په دې باندې دلالت کوی چه د ډاګې هيڅ اعتبار نشته. وَكَذَا الْبَوَارِيُّ او هم دغه ډول پوزکی دی. لِأَنَّ الْحَائِطَ لَا تُبْنَى لَهَا أَصْلًا خکه چې ديوال ددې لپاره نه جوړيږی. حَتَّى لَوْ تَنَازَعَا فِي حَائِطٍ تردې که په هغه ديوال کې جګړه وی. وَلِأَحَدِهِمَا عَلَيْهِ هَرَادِيُّ په کوم چې د يوکس ډاګې دی وَلَيْسَ لِلْآخَرِ عَلَيْهِ شَيْءٌ او د بل هيڅ نشته. فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو هغه به په دواړو کې برابر وی (وَلَوْ كَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَيْهِ جُذُوعٌ ثَلَاثَةٌ او که په دې باندې د هر يو درې شهتيره (تيران) وی. فَهُوَ بَيْنَهُمَا) نو ديوال به دواړو کې برابر وی. لِاسْتِوَائِهِمَا خکه چې د دواړو استعمال برابر دې. وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْأَكْثَرِ مِنْهَا بَعْدَ الثَّلَاثَةِ او د دريو نه روسته د زياتو هيڅ اعتبار نشته.

**حل اللغة:** **حائط:** ګير چاپيره ديوال، **جذوع:** د جذع جمع ده، ځټه (تنه)، شهتير، **بناء:** عمارت، **هرادی:** (په فتحه د هاء سره) د هُردی (په ضمه د هاء او په تشديد د ياء) جمع ده. په لويديځ کې د ليث نه نقل دی. چه «هی قصبات تضم ملوية بطاقات من الكرم يرسل عليها قضبان المكرم» ابن السکيت او صاحب د صحاح دا د ،،هاء،، په ځاني ،،حاء،، سره ذکرکړې دې. په صحاح کې دی. «الحروی من القصب نبطی معرب ولا تقل هروی» خو په ديوان الادب او قاموس کې د دواړو تصحيح شوې ده. غاية البيان کې وئيلی شوی دی. چه اصل يعنی دمبسوط اود کافی حکيم شهيد روايت په حاء سره دې. او په جامع صغير، شرح کافی، او مختصرالکرخی کې په ،،هاء،، سره دې. «وفی الجمهرة الحروی عدد فی باب الحاء والدال والراء» دستوراللغة کې دی. «هرادی دلسقف خشباته» **حمل:** بوج، **کوزة:** د اوبو لوښې (لوټه يا ګيلن وغيره)، **لبن:** کچه خښته، **جدار:** ديوال، **بواری:** د بوريه جمع ده. پوزکې،

**تشريح:** د ترجمې نه مطلب ښکاره دې

### په ديوال کښې چې د چا ګرګئ زياتې وی د هغه به وی

وَإِنْ كَانَ جُذُوعُ أَحَدِهِمَا وکه په دوی کې د يوکس تيران (شهتيرونه) أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةٍ د دريو نه کم وی. فَهُوَ لِصَاحِبِ الثَّلَاثَةِ نو ديوال به دريو (تيرانو) والا وی. وَلِلْآخَرِ مَوْضِعُ جِذْعِهِ او د دوهم لپاره به د تيرانو ځانې وی. فِي رِوَايَةٍ په يو روايت کې. وَفِي رِوَايَةٍ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَا تَحْتَ خَشَبَتِهِ، او په يو روايت کې د هريو لپاره د لرګو ايخودلو ځانې وی. ثُمَّ قِيلَ بيا وئيلی شوی دی. مَا بَيْنَ الْخَشَبِ بَيْنَهُمَا، چې د دوې (دوه) تيرانو منځ کې ځانې به دواړو کې مشترک وی. وَقِيلَ او وئيلی شوی دی. عَلَى قَدْرِ خَشَبِهِمَا، چې ددې تيرانو په اندازه به



أَنْ يَكُونَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ چې ديوال به دواړو کې نصف نصف دې. لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ وی. وَالْقِيَاسُ او قياس هم دا دې. بِالْكَثْرَةِ فِي نَفْسِ الْحُجَّةِ. خکه چې په نفس حجت کې د کثرت هيڅ اعتبار نشته. وَجْهُ الثَّانِي د دوهم روايت وجه داده. أَنَّ الِاسْتِعْمَالَ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ بِقَدْرِ خَشَبَتِهِ. چې د هريو د ارخه استعمال د هغه د لرګو په اندازه دې. وَوَجْهُ الْأَوَّلِ او د رومبی روايت وجه داده. أَنَّ الْحَائِطَ يُبْنَى لِوَضْعِ كَثِيرِ الْجُذُوعِ دُونَ الْوَاحِدِ چې ديوال د ډيرو تيرانو ايخودلو لپاره جوړولې شی. د يو دوې (دوه) لپاره نشی جوړولې. وَالْمُثَنَّى فَكَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لِصَاحِبِ الْكَثِيرِ نو ښکاره حالت شاهد دې. د زياتې والا دپاره. إِلَّا أَنَّهُ يَبْقَى لَهُ حَقُّ الْوَضْعِ خو کم والا لپاره به هم د ايخودلو حق وی. لِأَنَّ الظَّاهِرَ لَيْسَ بِحُجَّةٍ فِي اسْتِحْقَاقِ يَدِهِ خکه چې ښکاره حالت د قبضې په حق کې دليل نه دې. (وَلَوْ كَانَ لِأَحَدِهِمَا جُذُوعٌ که يوکس لرګی ايخودی وی. وَلِلْآخَرِ اتِّصَالٌ او د دوهم لپاره صرف اتصال (او د عمارت ملاويدل) وی. فَالْأَوَّلُ أَوْلَى) نو رومبې به اولی وی. وَيُرْوَى الثَّانِي أَوْلَى. اودا روايت هم شته. چه دوهم به اولی وی. وَجْهُ الْأَوَّلِ د اولی وجه داده. أَنَّ لِصَاحِبِ الْجُذُوعِ التَّصَرُّفَ چې د تيرانو والا ته تصرف حاصل دې. وَلِصَاحِبِ الِاتِّصَالِ الْيَدُ او اتصال والا ته قبضه (حاصل ده). وَالتَّصَرُّفُ أَقْوَى. او تصرف د قبضې نه زيات مضبوط دې. وَوَجْهُ الثَّانِي او د دوهم روايت وجه داده. أَنَّ الْحَائِطَيْنِ بِالِاتِّصَالِ يَصِيرَانِ كَبِنَاءٍ وَاحِدٍ چې دواړه ديوالونه د داسې ملاويدلو په وجه يو عمارت شو. وَمِنْ ضَرُورَةِ الْقَضَاءِ لَهُ بِبَعْضِهِ الْقَضَاءُ بِكُلِّهِ او دده په حق کې د بعض ديوال حکم کيدل ضرور تقاضا کوی. چه د کُل حکم هم دده لپاره وی. ثُمَّ يَبْقَى لِلْآخَرِ حَقُّ وَضْعِ جُذُوعِهِ لِمَا قُلْنَا بيا به دوهم ته د خپلو تيرانو ايخودلو حق وی. وَهَذِهِ رِوَايَةُ الطَّحَاوِيِّ او دا دوهم روايت د امام طحاوی رحمه الله دې. وَصَحَّحَهَا الْجُرْجَانِيُّ دې ته فقيه جرجانی رحمه الله صحيح وئيلی دی.

**تشريح:** قوله: «فی رواية......» دا روايت د اصل يعنی د مبسوط د ،،کتاب الاقرار،، دې. «حيث قال فيه......، الحائط كله لصاحب الأجذاع ولصاحب القليل ما تحت جذعه» محيط کې هم دې ته اصح وئيلی شوی دی. دوهم روايت د مبسوط د ،،کتاب الدعوه،، دې. «حيث قال فيه......، أن الحائط بينهما على قدر الأجذاع ،،» ددې روايت مطابق د مابين الخشبتين (ددوې (دوه) لرګو په منځ کې د ځانې) په اړه کې د امامانو اختلاف دې. بعض وائی. چه د خشبتين په منځ کې ځانې به دواړو کې برابر وی. او بعضو وئيلی دی. چه هريو ته به دهغه د تيرانو په اندازه ملاويږی. بيا دا په استحقاق باندې مبنی ده. د قياس تقاضا داده. چه ديوال په دواړو کې برابر ويش شی. خکه چې کوم شئ دليل دې. د هغې د زياتوالی اعتبار نه کيږی. دا د امام ابوحنيفه رحمه الله يو روايت هم دې. او د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله د قول قياس هم دا دې. د دوهم يعنی د کتاب الدعوه د روايت وجه داده. چه د ديوال د هر يو په استعمال کې راتګ، دهغه د تيرانو په اندازه دې او استحقاق د استعمال په لحاظ سره کيږی.

### د مشترکې فائدو والاخيز کښې د غالب قبضې والا د زيات حق حکم

قَالَ: (وَإِذَا كَانَتْ دَارٌ مِنْهَا فِي يَدِ رَجُلٍ عَشَرَةُ أَبْيَاتٍ) وکه د يوکس په قبضه کې د يو کور لس کمرې وی. وَفِي يَدِ آخَرَ بَيْتٌ او د بل په قبضه کې صرف يوه اطاق وی. فَالسَّاحَةُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ) نو غولې (صحن) به په دوی کې نيم په نيمه وی. لِاسْتِوَائِهِمَا فِي اسْتِعْمَالِهَا دوی دواړو په استعمال کې د برابر کيدلو په وجه وَهُوَ الْمُرُورُ فِيهَا. او هغه په دې کې تلل راتګ دی. قَالَ: (وَإِذَا ادَّعَى رَجُلَانِ أَرْضًا) کله چې دوې (دوه) سړو د زمکې دعوه اوکړله. يَعْنِي يَدَّعِي كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يعنی په دوی کې هريو کس دعوه اوکړله. (أَنَّهَا فِي يَدِهِ چې) دا زما په قبضه کې دی. لَمْ يُقْضَ نو حکم به نشی کولې. أَنَّهَا فِي يَدِ وَاحِدٍ مِنْهُمَا چې دا په دوی کې د يوکس په قبضه کې دې. حَتَّى يُقِيمَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا فِي أَيْدِيهِمَا) تر هغه پورې چې دوی پخپله قبضه باندې ګواهان قائم کړی. لِأَنَّ الْيَدَ فِيهَا غَيْرُ مُشَاهَدَةٍ خکه چې مځکه کې قبضه په نظر نه راځی. لِتَعَذُّرِ إِحْضَارِهَا دې د حاضرولو مشکل کيدلو په وجه. وَمَا

غَابَ عَنْ عِلْمِ الْقَاضِيْ او کوم شئ چې د قاضي د علم نه غائب وی. فَالْبَيِّنَةُ تُثْبِتُهُ هغه به ګواهان ثابتوی. وَإِنْ أَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ که په دوی کي يوکس ګواه قائم کړل. جُعِلَتْ فِيْ يَدِهِ نو هم دهغه په قبضه کي به کولی شي. لِقِيَامِ الْحُجَّةِ د دليل قائميدلو په وجه. لِأَنَّ الْيَدَ حَقٌّ مَقْصُوْدٌ ځکه چې قبضه هم يو مقصودی حق دی. (وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ) وکه دواړو ګواهان قائم کړل. (جُعِلَتْ فِيْ أَيْدِيْهِمَا) نود دواړو په قبضه کي به ګرځولې شي. د لِمَا بَيَّنَّا هغې په وجه کوم چې موړ بيان کړل. فَلَا يَسْتَحِقُّ لِأَحَدِهِمَا مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ نود دليل نه بغير به د يو لپاره د حق حکم نشي ورکولي (وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا قَدْ لَبِنَ فِي الْأَرْضِ) و که په دوی کي يوکس مځکه کي خښتي اولګولي. (أَوْبَنٰى) باني عمارت جوړ کړو. (أَوْحَفَرَ) يا ئې څاه اوکنستلو (فَهِيَ فِيْ يَدِهِ) نو مځکه به هم د هغه په قبضه کي وی لِوُجُوْدِ التَّصَرُّفِ وَالْإِسْتِعْمَالِ فِيْهَا د تصرف او استعمال موندلو په وجه

**تشریح:** په يوکور کي يوولس کمرې دی. چه په دې کي لس کمرې د يو سړی په قبضه کي دی. او يوه اطاق د دوهم په قبضه کي ده. اوس ددې کور په غولي (صحن) کي د دواړو جګړه شوه. نو غولي (صحن) به د دواړو په منځ کي نيم په نيمه وی. ځکه چې د غولي (صحن) کوم فوائد دی. ( مثلاً تيريدل، سامان ايخودل، د اودس اوبه تويول، لرګی ماتول وغيره) دې کي دوی دواړه برابر دی. نو صاحب د بيت، صاحب د منزل، صاحب د دار، صاحب د بيتِ واحداو صاحب د بيوتِ کثيره به په مرور وغيره کي برابر وی.

## (بَابُ دَعْوَي النَّسَبِ):

ژباړه: ( دا) باب د نسب د دعوې ( په بيان کي ) دې.

په دې عبارت کي علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی. چه د مال د دعوه احکام ذکر کاوه نه روسته د نسب احکام بيانوی. اود مال دعوه د زيات واقع کيدلو په وجه اهم وه. په دې وجه ئې دا مقدم کړې ده. په صحاح کي دی. چه دعوه ( په کسرې د دال) نسب کي استعمالولې شی. او په فتحې د دال خوراك کي ، او په قول د علامه عيني رحمه الله په ضمې د دال سره په جهاد کي استعماليږی.

فائده: د دعوې اقسام: دعوه درې قسمونه دی. ① دعوهٔ استيلاد ② دعوهٔ تحرير ( چې دې ته دعوه د ملك هم وائی ) ③ دعوهٔ شبه...... دعوه استيلاد دې ته وائی چه د مدعی علوق د مدعی په ملك کي وی. دا دعوه د علوق وخت اړخ ته مستند اود وطی اقرار ته متضمن وی. اودا واړه جاری شوی عقود ختموی. په دې شرط چې دا محل د فسخ وی. دعوهٔ تحرير دې ته وائی. چه د مدعی علوق د مدعی نه بغير د بل کس په ملك کي وی. دا دعوه د وطی اقرار ته متضمن نه وی. ځکه چې د علوق په وخت د ملك نه کيدلو په وجه استيلاد غير متصور دې. او نه جاری شوی عقود فسخ کوی. او ددې نفاذ په غيرملك کي نه کيږی. «لأن الحرية تقتصر على وقت الدعوة». دعوشبه داده. چه پلار د خپل خوی د وينځې د بچی مدعی وی. ددې لپاره شرط دادې. چه د علوق د وخت نه د دعوه وخته پورې وينځه او ددې په بچی کي د خوی ملك قائم پاتې وی.

### د وينځې شپږ مياشتې نه کمه موده کښې پيدا شوی بچی باندې د بائع دعوی

(وَإِذَا بَاعَ جَارِيَةً) يوکس يوه وينځه خرڅه کړله. (فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ) د هغې بچې پيدا شو. (فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ) او بائع د هغې دعوه اوکړله. فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ يَوْمِ بَاعَ نو که هغې د شپږ مياشتو نه په کم کي بچې راوړلې وی. د کومې ورځې نه ئې چې دا خرڅ کړې وو. فَهُوَ ابْنُ الْبَائِعِ نو بچې به د بائع زوې وی. وَأُمُّهُ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ[1] اود بچی مور به دده ام ولده وی. (وَفِي الْقِيَاسِ) او په قياس کي (هُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ رحمهما الله) او هم دا د امام زفر او امام

[1] القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا في تنوير الأبصار (٤\٤٩٤) ومحة الخالق (٧\٢٤٩) وملتقى الأبحر (٣\٣٨٨) والهندية (٤\١١٥) ونتاج الأفكار (٧\٢٧٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٩١، ١٩٢)



شافعي رحمهما الله قول دې (دَعْوَتُهُ بَاطِلَةٌ) دده دعوه باطل ده. لِأَنَّ الْبَيْعَ اعْتِرَافٌ مِنْهُ ځکه چې خرڅول دده د اړخه اقرار دې. بِأَنَّهُ عَبْدٌ چې دا بچې غلام دې. فَكَانَ فِيْ دَعْوَاهُ مُنَاقِضًا نودا دده په دعوه کي مناقض دې. وَلَا نَسَبَ بِدُوْنِ الدَّعْوَى. حالانکه نسب د دعوه نه بغير نه کيږی. وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّ اتِّصَالَ الْعُلُوْقِ بِمِلْكِهِ چې د علوق ( د نطفې قرار نيول) دده ملکيت سره ملاويدل شَهَادَةٌ ظَاهِرَةٌ په دې ښکاره دليل دې. عَلٰى كَوْنِهِ مِنْهُ چې دا دده ( نه پيدا ) دې. لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ الزِّنَا. ځکه چې ښکاره د زنا نه کيدل دی وَمَبْنَى النَّسَبِ عَلَى الْخَفَاءِ اود نسب بنا (بنياد) پټ شئ دې. فَيُعْفٰى فِيْهِ التَّنَاقُضُ نو په دې کي تناقض عفو دې. وَإِذَا صَحَّتِ الدَّعْوٰى او هرکله چې دعوه صحيح شوه. اسْتَنَدَتْ إِلٰى وَقْتِ الْعُلُوْقِ نود علوق ( د نطفې ځائې نيولو) وخت اړخ ته به منسوب وی. فَتَبَيَّنَ ددې نه ښکاره شوه. أَنَّهُ بَاعَ أُمَّ وَلَدِهِ چې ده خپله ام ولد خرڅه کړې ده. فَيُفْسَخُ الْبَيْعُ نو بيع به ختمولې شی. لِأَنَّ بَيْعَ أُمِّ الْوَلَدِ لَا يَجُوْزُ ځکه چې د ام ولد بيع جائز نه ده. (وَيُرَدُّ الثَّمَنُ) اوس دې ثمن واپس کړی. لِأَنَّهُ قَبَضَهُ بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه چې ده په ناحقه وصول کړی دې.

**تشریح:** يو سړی يوه وينځه خرڅه کړله. هغې د بيع د وخت نه شپږ مياشتو نه کم کي بچې راوړلو. او بائع د بچی دعوه اوکړله. نودا بچې به استحساناً د بائع زوې وی. او وينځه به د هغه ام ولد وی. د امام زفر او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د بائع دعوه باطل ده. د قياس تقاضا هم داده. ځکه چې د بائع وينځه خرڅول، ددې خبرې اقرار دې. چه هغه دده ام ولد نه بلکه وينځه ده. نود تيرشوی اقرار اود لاحق دعوه په منځ کي تناقض دې. نو دعوه به نشی اوريدلې. وجه د استحسان داده. چه د حمل قرار موندل، يو پټ امر دې. په دې وجه به د تناقض لحاظ نشی ساتلې. اود بائع په ملکيت کي دحمل ودريدل ددې خبرې دليل دې. چه بچې د بائع دې. ځکه چې ولادت د شپږ مياشتونه کم کي دې. او هرکله چې په مذکور طريقه د بائع دعوه صحيح وی. نودا به اصل علوق اړخ ته مستند وی. معلومه شوه. چه ده د ام ولد بيع کړې ده. نو بيع به ختمولې شی. ځکه چې د ام ولد بيع جائز نه ده. او ثمن واپس کول به ضروری وی. ځکه چې دا ده ناحق وصول کړې دې.

(وَإِنِ ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِيْ) و که ددې دعوه مشتری اوکړله. (مَعَ دَعْوَةِ الْبَائِعِ) د بائع دعوه سره (أَوْبَعْدَهُ) يا ددې نه پس، (فَدَعْوَةُ الْبَائِعِ أَوْلٰى) نود بائع دعوه به اولی وی. لِأَنَّهَا أَسْبَقُ ځکه چې هغه وړاندې ده. لِاسْتِنَادِهَا إِلٰى وَقْتِ الْعُلُوْقِ دده د علوق وخت اړخ ته د منسوب کيدلو په وجه. وَهٰذِهِ دَعْوَةُ اسْتِيْلَادٍ اودا دعوه د استيلاد ده.

**تشریح:** پوهيدل پکار دی. چه د خرڅې شوې وينځې نه کله بچې پيدا شی. نو ددې درې صورتونه دی. يا به د بيع د وخت نه شپږ مياشتو کي دننه پيدا وی. يا به دوې (دوه) کالو نه په زيات کي پيدا وی. او يا به ددې دواړو مودو په منځ کي پيدا وی. په دې کي د هر يو بيا څلور صورتونه دی. يا به د بچی مدعی صرف بائع وی. يا به صرف مشتری وی. يا به دواړه يوځائې وی. يا به د يو بل نه روسته وی. نود ړومبی صورت بيان پورته ذکر کړې شو.

او که مشتری ددې بچی د نسب دعوه اوکړله. نو دده د دعوه به هيڅ اعتبار نه کيږی. که د بائع دعوه سره يوځائې ئې کړې وی. او که د هغه نه روسته ئې کړې وی. ابراهيم نخعی رحمه الله فرمائی. چه د مشتری دعوه به معتبر وی. ځکه چې وينځه او بچی دواړو کي د مشتری ملکيت دې. او بائع لپاره صرف د نسب د استحقاق حق دې. او حق د حقيقت معارض نه جوړيږی. موږ وايو. چه د بائع دعوه بهرحال وړاندې ده. که د بائع دعوه مشتری د دعوه نه وړاندې وی. بيا خو د هغه د دعوه وړاندې کيدل ښکاره دې. اوکه دا دعوه د مشتری نه روسته وی. نو دده لپاره دا د حمل وخت اړخ ته مستند دې. ځکه چې دا دعوه د استيلاد ده. چه دې کي في الحال د قوت په وجه د ملکيت د قيام هم اړتيا نه وی. په خلاف د مشتری د دعوې، چه دا دعوه د تحرير ده.

(وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الْبَيْعِ) او که دا د دوې (دوه) کالو نه په زيات باندې پيدا شوې وی. د

بيع د وخت نه. لَمْ تَصِحَّ دَعْوَةُ الْبَائِعِ نود بائع دعوه به صحيح نه وي. لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ اتِّصَالُ الْعُلُوقِ بِمِلْكِهِ تَيَقُّنًا خكه چې دده ملكيت سره د علوق متصل كيدل يقيني طور باندې اونه موندلې شو. وَهُوَ الشَّاهِدُ وَالْحُجَّةُ حالانكه د شهادت دليل هم دا وو. (إِلَّا إِذَا صَدَّقَهُ الْمُشْتَرِي) البته كه مشترى د بائع تصديق اوكړي. فَيَثْبُتُ النَّسَبُ نو نسب به ثابتيږي. وَيُحْمَلُ عَلَى الِاسْتِيلَادِ بِالنِّكَاحِ او بچي پيدا كيدل به د نكاح په ذريعه باندې محمول كولې شي. وَلَا يَبْطُلُ الْبَيْعُ او بيع به نه باطليږي. لِأَنَّا تَيَقَّنَّا خكه چې موږ ته ددې يقين دې. أَنَّ الْعُلُوقَ لَمْ يَكُنْ فِي مِلْكِهِ چې علوق د بائع په ملكيت كې نه دې شوې. فَلَا يَثْبُتُ حَقِيقَةُ الْعِتْقِ وَلَا حَقُّهُ نو نه به حقيقي آزادي ثابتيږي. نه به حق آزادي ثابتيږي. وَهَذِهِ دَعْوَةُ تَحْرِيرٍ او دا دعوه د تحرير ده. وَغَيْرُ الْمَالِكِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ. او غير مالك ددې اهل نه وي.

**تشريح:** او كه د بيع د وخت نه د دوې (دوه) كالونه زيات باندې بچې پيدا شو .نود بائع د نسب دعوه به صحيح نه وي. خكه چې دده ملكيت سره د حمل متصل كيدل، يقيني طور باندې او نه موندلى شو. حالانكه دده د نسب د ثبوت حجت هم دا وو. البته كه مشترى د بائع تصديق اوكړي. نود بائع خخه به دده نسب ثابتيږي. اودا زيږيدل به په ذريعه د نكاح باندې محمول وي. چه زنا كارى لازم نشى. او بيع به نه باطليږي. خكه چې موږ ته ددې خبرې يقين دې. چه حمل د بائع په ملكيت كې نه دې شوې. نو په دې بچي كې به حقيقي ،او دده په مور به حق د آزادئ نه ثابتيږي. او هركله چې مور ام ولد نشوه. نود بائع دعوه، دعوهٔ تحرير پاته پاتې شوه. او غيرمالك ددې اهل پاتې نشو. او دلته كې بائع مالك نه دې. نود مشتري تصديق ضرورى دې. بهرحال بائع به ددې بچي قيمت وركوي. او بچې به په قيمت سره آزاد وي.

(وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ وَقْتِ الْبَيْعِ) او كه د بيع د وخت نه د شپږ مياشتو نه زيات وَلِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ اود دوې (دوه) كالو نه كم باندې پيدا شو. لَمْ تُقْبَلْ دَعْوَةُ الْبَائِعِ فِيهِ نو بچې كې به د بائع دعوه نه قبليږي. (إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهُ الْمُشْتَرِي) خودا چې مشترى ددې تصديق اوكړي (نو قبلولې به شي). لِأَنَّهُ احْتَمَلَ خكه دا احتمال شته. أَنْ لَا يَكُونَ الْعُلُوقُ فِي مِلْكِهِ چې شايد (كيداې شي) د بائع ملكيت كې علوق نه وي شوې. فَلَمْ تُوجَدِ الْحُجَّةُ نو دليل او نه موندې شو. فَلَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِهِ نود اخستونكي تصديق ضرورى دې. وَإِذَا صَدَّقَهُ كله چې هغه ددې تصديق اوكړي. يَثْبُتُ النَّسَبُ نو نسب به ثابتيږي. وَيَبْطُلُ الْبَيْعُ او بيع به باطل وي. وَالْوَلَدُ حُرٌّ او بچې به آزاد وي. وَالْأُمُّ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ او دده مور به ام ولد وي. كَمَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى لكه خنگه چې په ړومبئ مسئله كې دى. لِتَصَادُقِهِمَا ددوى دوارو خپل منځ كې تصديق وَاحْتِمَالِ الْعُلُوقِ فِي مِلْكِهِ اود بائع په ملكيت كې د نطفې د قرار د احتمال په وجه.

**تشريح:** كه وينځه د شپږ مياشتو نه زيات، اود دوې (دوه) كالونه كم كې بچې راوړي. او بائع د بچي دعوه اوكړي. نو دعوه به ردكيږي. خودا چې مشترى ددې خبرې تصديق اوكړي. خكه دا احتمال موجود دې. چه حمل د بائع ملكيت كې نه وي شوې. نو دده د اړخه حجت اونه موندې شو. نود مشترى تصديق ضرورى دې. نو دده په تصديق باندې به نسب ثابت، بيع باطل، بچې آزاد، او دده مور به د بائع ام ولد وي. ،،خلافاً للزفر والشافعي على مامر،،

### ماشوم مړ كيدو باندې د بائع د ام ولد جوړيدو دعوى

(فَإِنْ مَاتَ الْوَلَدُ كه بچې مړ شو. فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ بيا بائع دعوه اوكړله. وَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او وينځې دا (بچې) د شپږ مياشتو نه په كمه موده كې راوړلو. لَمْ يَثْبُتِ الِاسْتِيلَادُ فِي الْأُمِّ نو په وينځه كې به ام ولد نه ثابتيږي. لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ لِلْوَلَدِ خكه چې مور د ولد تابع ده. وَلَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ بَعْدَ الْمَوْتِ اود بچې نسب دده د مرګ نه روسته ثابت نشو. لِعَدَمِ حَاجَتِهِ إِلَى ذَلِكَ هغه ته ددې اړتيا نه كيدلو په وجه. فَلَا يَتْبَعُهُ اسْتِيلَادُ الْأُمِّ نو ددې نه روسته به د ام ولد كيدل هم نه ثابتيږي.



**تشريح:** كه د بچي انتقال اوشو. (حالانكه دا د بيع د وخت نه شپږ مياشتې كم باندې پيدا شوې وو) بيا بائع دده د نسب دعوه اوكړله. نو نسب به نه ثابتيږي. خكه چې بچى ته د نسب اړتيا نشته. اود مور ام ولد كيدل هم نه ثابتيږي. خكه چې مور د ولد تابع ده. او بچې اصل دې. هركله چې اصل كې نسب ثابت نشو نو تابع كې به استيلاد هم نه ثابتيږي. ،،لانه فرع النسب،،

(وَإِنْ مَاتَتِ الْأُمُّ او كه مور مړه شوه. فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ بيا بائع دعوه اوكړله. وَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او وينځې دا بچې د شپږ مياشتو نه په كمه موده كې راوړلو. يَثْبُتُ النَّسَبُ فِي الْوَلَدِ نو نسب به بچي كې ثابتيږي. وَأَخَذَهُ الْبَائِعُ و بائع به دا اخلى. لِأَنَّ الْوَلَدَ هُوَ الْأَصْلُ فِي النَّسَبِ خكه چې نسب كې بچې اصل دې. فَلَا يَضُرُّهُ فَوَاتُ التَّبَعِ نود تابيع فوت كيدل، به دده لپاره هيڅ نقصان ده نه وي. وَإِنَّمَا كَانَ الْوَلَدُ أَصْلًا او بچې اصل خكه دې. لِأَنَّهَا تُضَافُ إِلَيْهِ چې مور دده اړخ ته منسوب كيږي. يُقَالُ أُمُّ الْوَلَدِ لكه چې وئيلې شي ،ام ولد. وَتَسْتَفِيدُ الْحُرِّيَّةَ مِنْ جِهَتِهِ او هم دده د اړخه هغه آزادي حاصلوي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبى كريم ﷺ د ارشاد په وجه. {أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا} ([1]) چه، ،دې لره ددې خوى آزاده كړله،،

**تشريح:** كه بائع د وينځې فوت كيدلو نه روسته د بچي متعلق دعوه اوكړي. كه د بچي د مور يعنى وينځې انتقال اوشو. او ددې نه روسته بائع د بچي دعوه اوكړله. او بچې شپږ مياشتونه كم كې پيدا شوې وي. بيا به هم نسب نه ثابتيږي. خكه چې آزادئ كې اصل بچې دې. مور نه ده. هم دا وجه ده. چه بچې مور اړخ ته منسوب كيږي. ،،يقال ام ولد،، او وينځې ته هم آزادي په بچي سره حاصليږي. لقوله ﷺ: إعتقها ولدها ﷺ (رواه ابن ماجة والحاكم) او هركله چې بچې اصل شو. نو تابع يعنى د مور فوت كيدل به هيڅ مضر نه وي.

وَالثَّابِتُ لَهَا حَقُّ الْحُرِّيَّةِ وَلَهُ حَقِيقَتُهَا، او مور لپاره د آزادئ حق اود بچي لپاره حقيقي آزادي ثابت ده. وَالْأَدْنَى يَتْبَعُ الْأَعْلَى او ادنى د اعلى تابع وي.

**تشريح:** د وينځې كوم بچې چې د آقا د نطفې نه پيدا وي. هغه د اصلي پلار پشان آزاد وي. او ددې په وجه دده مور ته د آزادئ حق حاصليږي. تردې چې هغه د خرخولو لائقه نه پاتې كيږي. اود مالك په مړكيدلو سره آزاديږي. او فوري آزادي خكه كيږي. چه د ملكيت په وجه آقا ته حلاله ده. نود بچې تعلق قائم دې. كه فى الفور آزاديدله. نود نكاح اړتيا به وو. اوس ممكن ده. چه هغه منظوره نكړي. يا مالك سره مهر نه وي. نود بچي په پرورش كې به پريشانى پيښيدله. په دې وجه شريعت د مالك د ژونده پورې هم هغه شان فى الحال هم حلال ساتلې ده. (عينى)

### د مشتري په قبضه كښې د وينځې د بچي په مړيدو د ثمن مسئله

(وَيَرُدُّ الثَّمَنَ كُلَّهُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ ([2]) ووايس كوي به پوره ثمن د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول كې. وَقَالَا: امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائي. يَرُدُّ حِصَّةَ الْوَلَدِ چې د بچي برخه به واپس كوي. وَلَا يَرُدُّ حِصَّةَ الْأُمِّ اود مور برخه به نه واپس كوي. لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ خكه دا ښكاره شوه. أَنَّهُ بَاعَ أُمَّ وَلَدِهِ، چې ده خپله ام ولد خرخه كړې وه. وَمَالِيَّتُهَا غَيْرُ مُتَقَوِّمَةٍ عِنْدَهُ فِي الْعَقْدِ وَالْغَصْبِ حالانكه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ام ولد ماليت متقوم نه دې. په عقد او غصب كې، فَلَا يَضْمَنُهَا الْمُشْتَرِي، نو مشترى به ددې ضامن نه وي. وَعِنْدَهُمَا مُتَقَوِّمَةٌ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز متقوم دې. فَيَضْمَنُهَا .نو ددې به ضامن وي.

---

[1] تقدم تخريج فى باب الإستيلاد)

[2] القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا فى تنوير الأبصار(٤٩٤١٤) وخلاصة الفتاوى (١٠٥١٤) والهندية (١١٥١٤) والزيلعى(٣٣٠١٤) نقلاً عن القول الراجح (١٩٢١٢)

**تشريح:** هركله چې د مور د وفات نه روسته د بچي نسب ثابت شو.نو بائع به دا اخلي.اوس د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بائع باندې پوره ثمن واپس كول واجب دي.صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه صرف د بچي د برخې (حصې) ثمن به واپس كوي.وجه داده.چه د بائع نه د بچي نسب ثابتيدلو سره دا خبره واضح شوه.چه ده خپله ام ولد خرخه كړې وه.اود ام ولد بيع ناجائز ده.خود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ام ولد متقوم نه دې.نه په عقد بيع كې او نه په غصب كې .نو مشتري به ددې ضامن وي.يعنى هغه نه د خپل كُل ثمن واپس اخستلو مستحق وي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ددې ماليت متقوم دې.نو مشتري به ددې ضامن وي.دا داسې اوګنړه.چه مثلاً مشتري مذكوره ام ولد د لس دينارو په عوض واخستله.اودا چې وينځه فرض كړې شى.نو ددې د قيمت اندازه پنځلس ديناره، او بچې چې غلام فرض كړې شى.نو دده قيمت لس دينار دې.نو مذكوره لس ديناره ثمن د وينځې او ددې د بچي په مقابله كې واقع شو.اود وينځې قيمت پنځلس ديناره اود بچي لس ديناره اندازه اوكړې شوه.نو لس ديناره ثمن ددې دواړو په مقابله كې داسې ويش شو.چه شپږ ديناره د وينځې په بدله كې ، او څلور ديناره د بچي په بدله كې شو.بيا چې مشتري بچې بائع ته واپس كړو.نو بائع به ددې بچي څلور ديناره واپس كوي.چه بدل او مبدل دواړه جمع نشي.او ام ولد چونكه مشتري سره مړه شوه.نو ددې شپږ ديناره بائع نه ساقط شو.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د وينځې په مړكيدلو سره په منزله د آزاد هيڅ نه ساقطيږي.

> **وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.جامع صغير كې دي. **وَإِذَا حَمَلَتِ الْجَارِيَةُ فِي مِلْكِ رَجُلٍ** چې كله دجا په ملك كې د وينځې حمل اوشو. **فَبَاعَهَا** او هغه خرخه كړله. **فَوَلَدَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي** بيا د مشتري په قبضه د هغې بچې پيدا شو. **فَادَّعَى الْبَائِعُ الْوَلَدَ** نو بائع د بچي دعوه اوكړله. **وَقَدْ أَعْتَقَ الْمُشْتَرِي الْأُمَّ** حالانكه مشتري مور آزاده كړې ده. **فَهُوَ ابْنُهُ** نو بچې به د بائع زوې وي. **يُرَدُّ عَلَيْهِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ** او بائع به ثمن كې دده برخه واپس كوي. **وَلَوْ كَانَ الْمُشْتَرِي إِنَّمَا أَعْتَقَ الْوَلَدَ** او كه مشتري بچې آزاد كړو. **فَدَعْوَاهُ بَاطِلَةٌ** نود بائع دعوه به باطله وي. **وَوَجْهُ الْفَرْقِ** وجه د توپير داده. **أَنَّ الْأَصْلَ فِي هَذَا الْبَابِ الْوَلَدُ،** چې دې باب كې اصل بچې دې. **وَالْأُمُّ تَابِعَةٌ لَهُ** او مور ددې تابع ده. **عَلَى مَا مَرَّ**. لكه څنګه چې تير شوي دي. **وَفِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ قَامَ الْمَانِعُ مِنَ الدَّعْوَةِ وَالِاسْتِيلَادِ** او په رومبي صورت كې د نسب او استيلاد نه امر مانع **وَهُوَ الْعِتْقُ فِي التَّبَعِ** يعنى آزادي په تابع كې اوموندې شوه. **وَهُوَ الْأُمُّ** او هغه مور ده. **فَلَا يَمْتَنِعُ ثُبُوتُهُ فِي الْأَصْلِ** نو اصل كې به د نسب د ثبوت نه مانع نه وي. **وَهُوَ الْوَلَدُ،** او هغه بچې دې.

**تشريح:** عبارت كې جامع څكه نقل شوې دې.چه دا معلومه شي.چه اخستې شوې وينځې او ددې د بچي د آزادئ حكم د هغې د مرګ پشان دې.د عبارت مضمون دادې.چه د يوسړي په ملكيت كې دده وينځې ته حمل اوشو.بيا ده خرخه كړله.وينځې د مشتري په قبضه كې د شپږ مياشتونه كمه موده كې بچې راوړلي دې.بائع ددې دعوه اوكړله.چه دا زما زوې دې.حالانكه مشتري ددې بچي مور آزاده كړې ده.نود بائع دعوه صحيح ده.اود بچي نسب به ثابت وي.او بائع به په كُل ثمن كې دده برخه واپس كوي.او كه مشتري بچې آزاد كړو.مور ئې آزاده نكړله.نود بائع د نسب دعوه به باطله وي.

ⓘ وجه د توپير داده.چه د دعوهٔ استيلاد په باب كې بچې اصل دې.او مور دده تابع ده.نو په رومبي صورت ( د ام ولد په آزادولو)كې د دعوهٔ استيلاد نه چې كوم امر مانع دې.يعنى عتق او آزادي ، هغه په مور كې اوموندلې شوه.كوم چې تابع ده.نودا به په اصل كې موثر نه وي.يعنى بچي كې به نسب ثابتيږي.څكه چې تابع كې د حكم ممتنع كيدل اصل كې د حكم ممتنع كيدل نه واجبوي.

ⓘ ممكن ده.چه په دې باندې څوك دا اعتراض اوكړي.چه هركله بائع لپاره د دعوهٔ استيلاد ثبوت ممتنع نشو.نو بائع نه د بچي نسب ثابت شو.څكه چې يقيني حمل د بائع په ملكيت كې دې.( كماهو المفروض).اود بچي د نسب ثابتيدلو احكامو كې دده دمور د بائع ام ولد كيدل هم دي.نود بائع خرڅول اود [illegible]ي آزادول باطليدل پكار دي.



> **وَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ.** اود مور په حق كې استيلاد د ثبوت نسب، د ولد د ضرورياتو څخه نه دې. **كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْرُورِ فَإِنَّهُ حُرٌّ** لكه څنګه چې د دهوكه كړې شوي بچې آزاديږي. **وَأُمُّهُ أَمَةٌ لِمَوْلَاهَا،** او دده مور د خپل آقا وينځه باتې كيږي. **وَكَمَا فِي الْمُسْتَوْلَدَةِ بِالنِّكَاحِ.** او لكه څنګه چې د نكاح په ذريعه د يوې وينځې نه پيدا شوې د اولاد څخه دې.

**تشريح:** صاحب دهدايه رحمه الله په دې عبارت سره ددې څواب وركوي.چه دا ضروري نه ده.چه د بچي آزادي ثابته شي.نو دده په مور كې به هم د ام ولد كيدلو آزادي ثابتيږي.نو ولد مغرور، او ولد مستولده به آزاديږي.حالانكه دده مور ام ولد نه جوړيږي.بلكه وينځه باتې كيږي.

ⓘ د ولد مغرور صورت دادې.چه يوې آزادې وينځې يو آزاد سړې ته دهوكه وركړله.چه زه آزاده يم.ما سره نكاح اوكړه.هغه نكاح اوكړله.او اولاد اوشو.بيا د وينځې آقا دا ثابته كړله.چه دا زما وينځه ده.نو اولاد به آقا ته وركولې شي.او هغه به په قيمت سره آزاديږي.نود اولاد نسب ثابت شو.حالانكه ام ولد نشوه.

ⓘ د ولد مستولده صورت دادې.چه يوكس د غير وينځې سره نكاح اوكړله.او ددې نه ئې اولاد اوشو.نود اولاد نسب به ثابت وي.حالانكه مور به ام ولد نه وي.بهرحال د بچي نسب ثابتيدلو يا ازاديدلو سره دا لازم نه ده.چه دده مور هم ام ولد يا آزاده شي.

> **وَفِي الْفَصْلِ الثَّانِي قَامَ الْمَانِعُ بِالْأَصْلِ** او په دوهم صورت كې مانع امر اصل **وَهُوَ الْوَلَدُ** يعنى بچي سره قائم دې. **فَيَمْتَنِعُ ثُبُوتُهُ فِيهِ وَفِي التَّبَعِ،** نود نسب ثبوت به اصل او تابع دواړو كې ممتنع وي.

**تشريح:** او دوهم صورت ( د ولد په اعتاق) كې بچي كې امر مانع اوموندې شو.كوم چې اصل دې.نو دده نه نسب ثابتيدل اصل يعنى بچي كې ممتنع شو.او هركله چې اصل كې ممتنع شو.نو تابع يعنى مور كې به هم ممتنع وي. ﴿لأن امتناع الحكم في الأصل يوجب إمتناعه في التبع أيضا﴾

> **وَإِنَّمَا كَانَ الْإِعْتَاقُ مَانِعًا لِأَنَّهُ** او آزادول د نسب مانع كيدلو څكه دي. **لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ** چې آزادول نقصان ده نه دي. **كَحَقِّ اسْتِلْحَاقِ النَّسَبِ** لكه څنګه چې د استلحاق نسب **وَحَقِّ الِاسْتِيلَادِ** اود استيلاد حق دې. **فَاسْتَوَيَا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ** نو په دې طريقه سره دواړه برابر شو. **ثُمَّ الثَّابِتُ مِنَ الْمُشْتَرِي حَقِيقَةُ الْإِعْتَاقِ** بيا د مشتري د اړخه حقيقي آزادي ده. **وَالثَّابِتُ فِي الْأُمِّ حَقُّ الْحُرِّيَّةِ،** او وينځه كې صرف حق د آزادئ دې. **وَفِي الْوَلَدِ لِلْبَائِعِ حَقُّ الدَّعْوَةِ** او بچي كې بائع لپاره د نسب د دعوه حق دې. **وَالْحَقُّ لَا يُعَارِضُ الْحَقِيقَةَ،** او حق معارض حقيقت نه وي. **وَالتَّدْبِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ** او مدبر كول په منزله د اعتاق دي. **لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ** څكه چې دا هم قابل نقض نه دى. **وَقَدْ ثَبَتَ بِهِ بَعْضُ آثَارِ الْحُرِّيَّةِ.** او ددې نه هم د آزادئ بعض آثار ثابت شو. **وَقَوْلُهُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ يُرَدُّ عَلَيْهِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ** او په رومبي صورت كې دا وئيل.چه،، ثمن څخه به د بچي برخه واپس كوي **قَوْلُهُمَا** د صاحبينو رحمهما الله قول دي. **وَعِنْدَهُ يُرَدُّ بِكُلِّ الثَّمَنِ** د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به پوره ثمن واپس كوي. **هُوَ الصَّحِيحُ كَمَا ذَكَرْنَا فِي فَصْلِ الْمَوْتِ** هم دا وجه ده.لكه څنګه چې مور د وينځې د مرګ په صورت كې ذكركړي دي.

**تشريح:** په ذكر شوې مسئله كې د مشتري وينځه او ددې بچې آزادول، دعوهٔ استيلاد ، دعوهٔ نسب نه مانع څكه ده.چه د حق استلحاق، نسب او حق استيلاد پشان اعتقاق هم د نقض قابل نه دې.نو د مشتري د اړخه دلته كې آزادئ ته په دې معنى ترجيح ده.چه د مشتري د اړخه حقيقي آزادي ده.اود بائع د اړخه وينځه كې صرف حق آزادي او بچي كې حق دعوهٔ نسب ده.اود حق آزادي او نسب حقيقي آزادئ سره هيڅ معارضه نشي كيدې.

او بائع د اړخه حق استلحاق او حق استيلاد كيدل په دې اړه كې برابر دي.چه دا نه ماتيږي.بيا

### د بائع په ملكيت كښې د پيدا شوي غلام خرڅولو نه روسته د نسب دعوى

قَالَ: (وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا) يوكس داسې غلام خرڅ كړو. وُلِدَ عِنْدَهُ كوم چې دده سره پيدا شوې دي. وَبَاعَهُ الْمُشْتَرِيْ مِنْ آخَرَ مشتري دا د بل په لاس خرڅ كړو. ثُمَّ ادَّعَاهُ الْبَائِعُ الْأَوَّلُ بيا بائع اول ددې د نسب دعوه اوكړله. فَهُوَ ابْنُهُ نو هغه دده زوې دې. وَيَبْطُلُ الْبَيْعُ) او بيع به ماتولې شي. لِأَنَّ الْبَيْعَ يَحْتَمِلُ النَّقْضَ، خكه چې د بيع ختمول ممكن دي. وَمَالَهُ مِنْ حَقِّ الدَّعْوَةِ او بائع ته چې كوم د دعوه حق دې. لَا يَحْتَمِلُهُ هغه د نقض محتمل نه دې. فَيُنْقَضُ الْبَيْعُ لِأَجْلِهِ نو ددې په وجه به بيع ماتيږي. وَكَذَا إِذَا كَاتَبَ الْوَلَدَ دغه ډول كه مشتري بچې مكاتب كړو. أَوْرَهَنَهُ يا ئې رهن كيخودلو. أَوْآجَرَهُ يا ئې په كرايه باندې وركړو. أَوْكَاتَبَ الْأُمَّ يا ئې دده مور مكاتبه كړله. أَوْرَهَنَهَا يا ئې رهن كيخودله، أَوْزَوَّجَهَا يا ئې بل سره واده كړله (په نكاح وركړله). ثُمَّ كَانَتِ الدَّعْوَةُ بيا هغه دعوه اوشوه. (نو بيع به ماتولې شي). لِأَنَّ هٰذِهِ الْعَوَارِضَ تَحْتَمِلُ النَّقْضَ خكه چې دا عوارض د نقض محتمل دي. فَيُنْقَضُ ذٰلِكَ كُلُّهُ نو دا واړه به ماتولې شي. وَتَصِحُّ الدَّعْوَةُ او دعوه به صحيح كيږي، بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ وَالتَّدْبِيْرِ په خلاف د اعتاق او تدبير، عَلٰى مَامَرَّ، لكه څنګه چې تيرشو.

تشريح: يوكس داسې غلام خرڅ كړو. كوم چې دده سره پيدا شوې دي. يعنې اصل دده په ملكيت كې شوې دي. مشتري دا د بل په لاس خرڅ كړو. بيا بائع اول دده د نسب دعوه اوكړله. نو په دې سره به نسب ثابتيږي. او اول او دوهم دواړه بيع به ماتيږي. خكه بيع داسې شئ دې. چه ماتيږي. او بائع ته چې د دعوهٔ نسب كوم حق دې. هغه نه ماتيږي. نود حق دعوهٔ په وجه به بيع ماتولې شي. دغه ډول كه مشتري بچې مكاتب كړو. يا ئې رهن كيخودلو. يا ئې دا په كرايه باندې وركړو. يا ئې دده مور مكاتب كړله. يا ئې رهن كيخودله. يا ئې دده د چا سره واده اوكړو. بيا بائع ددې بچې د نسب دعوه اوكړله. بيا هم دا حكم دې. چه دا تصرفات به ماتولې شي. خكه دا عوارض داسې دي. چه ماتيدلې شي. خود بائع دعوه نشي ماتيدلې.

وَبِخِلَافِ مَا او په خلاف ددې إِذَا ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِيْ أَوَّلًا كله چې مخكې مشتري ددې دعوه اوكړله. ثُمَّ ادَّعَاهُ الْبَائِعُ بيا بائع اوكړله. حَيْثُ لَا يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنَ الْبَائِعِ نود بائع څخه به نسب نه ثابتيږي. لِأَنَّ النَّسَبَ الثَّابِتَ مِنَ الْمُشْتَرِيْ خكه چې كوم نسب مشتري نه ثابت دې. لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ هغه د نقض محتمل نه دې. فَصَارَ كَإِعْتَاقِهِ نودا دده د آزادولو په شان شو.

تشريح: اوكه د بچې دعوه وړاندې مشتري اوكړله. بيا بائع اوكړله. نو بائع څخه به نسب نه ثابتيږي. خكه چې كوم نسب مشتري نه ثابت شو. هغه د نقض قابل نه دې. نو داسې شوه. لكه چې مشتري دا آزاد كړې وي.

سوال: آزادولو سره حقيقي آزادي ثابت ده. او دعوهٔ نسب سره د آزادئ حق ثابت دې. نو دواړه برابر څنګه شو. او د بائع او مشتري دعوهٔ نسب د حق حريت ثابتيدلو كې برابر دې. نو مرجح څنګه شو؟

خواب: د نقض احتمال نه كيدلو كې خو عتق او دعوه دواړه برابر دي. پاتې شو ترجيح، نو د مشتري دعوه نه د بائع په دعوه باندې په دې وجه ترجيح ده. چه بچې د رومبئ دعوې په ذريعه نسب ثابتيدلو سره داسې وخت بې نيازه شو. چه هغې كې دده هيڅ څوك مزاحم او مقابل نه دی.

### په غبرګونې بچو كښې په يو د نسب دعوې سره د دوهم حكم

قَالَ (وَمَنِ ادَّعٰى نَسَبَ أَحَدِ التَّوْأَمَيْنِ چاچه په دوې (دوه) غبرګونې بچو كې د يو د نسب دعوه اوكړله. ثَبَتَ نَسَبُهُمَا مِنْهُ) نو په دې سره به د دواړو نسب ثابتيږي. لِأَنَّهُمَا مِنْ مَاءٍ وَاحِدٍ، كه چې دوی دواړه د يوې نطفې نه پيدا دي. فَمِنْ ضَرُوْرَةِ ثُبُوْتِ نَسَبِ أَحَدِهِمَا ثُبُوْتُ نَسَبِ الْآخَرِ، نود يو په نسب ثابتيدلو سره، د دوهم د نسب ثابتول ضروري دی. وَهٰذَا لِأَنَّ التَّوْأَمَيْنِ وَلَدَانِ بَيْنَ وِلَادَتِهِمَا أَقَلُّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او دا خكه چې جوړه (غبرګونې) بچې هغه دوې (دوه) بچې دي. چه ددوی د زيږيدل په منځ كې شپږ مياشتو نه كمه موده وی. فَلَا يُتَصَوَّرُ عُلُوْقُ الثَّانِيْ حَادِثًا نود دوهم حمل روسته ممكن نه دې. لِأَنَّهُ لَاحَبَلَ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ. خكه چې د حمل ميعاد د شپږ



مياشتونه كم نه دې.

تشريح: د غبرګونې بچو په اړه كښې فرمائي چه د يوسړي سره دده د وينځې نه جوړه (غبرګونې) يعنې دوې (دوه) بچې د يوې خيټې (د يو حمل) نه پيدا شو. او هغه په دوی كې د يو د نسب دعوه اوكړله. نود دواړو نسب به ثابتيږي. خكه چې دوی دواړه بچې د يوې نطفې نه پيدا شوي دي. نو هركله چې د يو نسب ثابت شو نود دوهم نسب ثابتيدل ضروري دی.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: جامع صغير كې دي. إِذَا كَانَ فِيْ يَدِهِ غُلَامَانِ تَوْأَمَانِ چې كله د يو كس په قبضه كې دوې (دوه) غبرګونې غلامان وي. وُلِدَا عِنْدَهُ كوم چې هم دده سره پيدا شوي دي. فَبَاعَ أَحَدَهُمَا او هغه په دوی كې يو بچې خرڅ كړي. وَأَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِيْ او مشتري هغه آزاد كړي. ثُمَّ ادَّعَى الْبَائِعُ الَّذِيْ بيا بائع د هغه غلام دعوه اوكړي فِيْ يَدِهِ كوم چې دده په قبضه كې دې. فَهُمَا ابْنَاهُ نو دوی دواړه به دده خامن وي. وَبَطَلَ عِتْقُ الْمُشْتَرِيْ او د مشتري آزادول به باطل وي. لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ الَّذِيْ عِنْدَهُ خكه چې هركله ددې بچې نسب ثابت شو كوم چې بائع سره دې. لِمُصَادَفَةِ الْعُلُوْقِ وَالدَّعْوَةِ مِلْكَهُ د حمل او نسب دعوه دده په ملكيت كې د موندلو په وجه. إِذِ الْمَسْأَلَةُ مَفْرُوْضَةٌ فِيْهِ خكه چې مسئله هم په دې كې فرض شوې ده. ثَبَتَ بِهِ حُرِّيَّةُ الْأَصْلِ فِيْهِ نو په دې سره اصلي آزادي ثابته شوه. فَيَثْبُتُ نَسَبُ الْآخَرِ، وَحُرِّيَّةُ الْأَصْلِ فِيْهِ ضَرُوْرَةً نود دوهم بچې نسب او اصلي آزادي به هم بال ارتيا ثابتيږي. لِأَنَّهُمَا تَوْأَمَانِ، خكه چې دوی دواړه غبرګونې دي. فَتَبَيَّنَ أَنَّ عِتْقَ الْمُشْتَرِيْ نو اوس دا ښكاره شوه، چه د مشتري آزادول وَشِرَاءَهُ لَاقٰى حُرِّيَّةَ الْأَصْلِ او دده اخستل اصلي آزادئ سره ملاؤ شوي دي. فَبَطَلَ، نو باطل شو. بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْوَلَدُ وَاحِدًا په خلاف ددې كله چې بچې يو وي. لِأَنَّ هُنَاكَ يَبْطُلُ الْعِتْقُ فِيْهِ مَقْصُوْدًا لِحَقِّ دَعْوَةِ الْبَائِعِ خكه چې هلته كې د بائع د نسب د دعوه په وجه قصداً عتق باطليدلو. وَهُنَا ثَبَتَ تَبَعًا لِحُرِّيَّتِهِ فِيْهِ حُرِّيَّةُ الْأَصْلِ او دلته د اصلي آزادئ په وجه د مشتري اعتاق باطليدل تبعاً ثابت شو. فَافْتَرَقَا نو په دواړو كې توپير اوشو. (وَلَوْ لَمْ يَكُنْ أَصْلُ الْعُلُوْقِ فِيْ مِلْكِهِ) او كه اصل حمل دده په ملكيت كې نه وی. ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ الَّذِيْ عِنْدَهُ، نو ددې بچې نسب به ثابتيږي. كوم چې دده سره دې. وَلَا يُنْقَضُ الْبَيْعُ فِيْمَا بَاعَ) او كوم ئې چې خرڅ كړې دې. هغې كې به بيع نه باطليږي. لِأَنَّ هٰذِهِ دَعْوَةُ تَحْرِيْرٍ خكه چې دا دعوه د تحرير (آزادولو) ده. لِانْعِدَامِ شَاهِدِ الْاِتِّصَالِ، د شاهد اتصال نه كيدلو په وجه، فَيَقْتَصِرُ عَلٰى مَحَلِّ وِلَايَتِهِ نو دعوه به دده ولايت پورې پاتې كيږي.

تشريح: جامع صغير كې دي. يو سړي سره دوې (دوه) غبرګونې غلامان دي. چه هم دده سره پيدا شوي دي. ده په دوی كې يو خرڅ كړو. او اخستونكي دا آزاد كړو. ددې نه روسته مذكوره سړي (بائع) د هغه بچې د نسب دعوه اوكړله. د كوم بيع چې نه ده شوې. او هغه دده سره موجود دې. نو په دې سره به د دواړو نسب ثابتيږي. اود مشتري آزادول او اخستل به باطل وي. وجه دا ده. چه هركله ددې غلام نسب ثابت شو. كوم چې بائع سره موجود دې. په دې دليل سره چې د نطفې قرار نيول، اود نسب دعوه دده په ملك كې شوې ده. نو په دې بچې كې اصلي آزادي ثابت شوه. نو اوس ضروري ده. چه د دوهم بچې نسب او اصلي آزادي هم ثابته شي. خكه دا ناممكن ده. چه دوې (دوه) بچې د يوې نطفې نه پيدا شوي وي. او په دوی كې يو آزاد وي. او دوهم غلام وي. او هركله چې هغه هم اصلي آزاد شو. نو دا خبره ښكاره شوه. چه مشتري اصلي آزاد سړې اخستې او آزاد كړې دې. حالانكه اصلي آزاد سړې اخستل، او آزادول دواړه باطل دي. البته كه بچې يو وو. نود مشتري آزاديدل به نه باطليدل. خكه چې په دې صورت كې به د بائع د دعوه په وجه عتق قصداً باطليدلو. اودا جائز نه ده. اود غبرګونې كيدلو په صورت كې د اصلي آزادئ په وجه د مشتري آزادول تبعاً ثابت شوي دي.

**قوله هناك ثبت تبعاً** د حرية ضمير مشتري اړخ ته راجع دې. او لفظ فيه، يثبت فعل سره متعلق دې. او ضمير مشتري اړخ ته راجع دې. او حرية الاصل مجرور دې. خكه چې دا د ،،لحرية،، نه بدل دې. **ای يثبت بطلان**

إعتاق المشتري فيما إشتراه تبعاً لحريته الأصل لا حرية التحرير.

## غلام باندي د خپل غلام ځوی اقرار کولو نه روسته د خپل ځوی دعوی کولو حکم

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الصَّبِيُّ فِي يَدِ رَجُلٍ) د يوکس په قبضه کي يو بچي دي. فَقَالَ: هغه اووئيل. هُوَ ابْنُ عَبْدِي فُلَانٍ الْغَائِبِ چي دا زما د فلاني غائب غلام زوي دي. ثُمَّ قَالَ: هُوَ ابْنِي لَمْ يَكُنْ ابْنَهُ أَبَدًا نو هغه به کله هم دده زوي نه جوړيږی. (وَإِنْ جَحَدَ الْعَبْدُ أَنْ يَكُونَ ابْنَهُ) اګرچه غلام د خان دپاره (ددې غلام) د ځوی کيدلو نه انکار اوکړی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ([1]) دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی. (وَقَالَا:) صاحبين رحمهما الله فرمائی. إِذَا جَحَدَ الْعَبْدُ که غلام انکار اوکړی. هُوَ ابْنُ الْمَوْلَى) نو هغه به د آقا زوي وی. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ او هم په دې اختلاف دي. إِذَا قَالَ: کله چي ده اووئيل. هُوَ ابْنُ فُلَانٍ وُلِدَ چي هغه د فلاني زوي دي. عَلَى فِرَاشِهِ دده په فراش پيدا شوي دي. ثُمَّ ادَّعَاهُ لِنَفْسِهِ ددې نه روسته هغه د خان لپاره دعوه اوکړله.

**تشريح:** که د يوسړی سره يو بچي دي. هغه اووئيل چه دا بچي زما د فلاني غائب غلام مثلاً د زيد زوي دي. بيا ئې اووئيل چه دا خو زما زوي دي. نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هغه کله هم د هغه زوي نشی کيدلی. نه فی الحال او نه روسته. اګرچه مقرله (زيد) دده د ځوی کيدلو نه انکار اوکړی. صاحبين رحمهما الله فرمائی. که مقرله ددې انکار اوکړو. نو دا بچي به دده زوي وی.

### په تيره شوی مسئله کښي د امام او صاحبينو دلائل

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّ الْإِقْرَارَ ارْتَدَّ بِرَدِّ الْعَبْدِ چي د غلام په رد کاوه سره اقرار رد شو فَصَارَ كَأَنْ لَمْ يَكُنِ الْإِقْرَارُ ,, کان لم يکن،، شو.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه هرکله د مقرله په انکار سره د مقر اقرار رد شو. نو اقرار ,, کان لم يکن،، شو نو دعوه صحيح ده. ممکن ده. چه په دې ځوك دا اووائی. چه ,, کان لم يکن،، ګرځول صحيح نه دی. ځکه چي نسب خو د هغه ځيزونو څخه دې چه هغې کی د ماتيدلو احتمال نشته.

وَالْإِقْرَارُ بِالنَّسَبِ يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ او د نسب اقرار رد کاوه سره رد کيږی. وَإِنْ كَانَ لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ، اګرچه نسب کي د ماتيدلو احتمال نشته. أَلَا يُرَى آيا نه ګوري، أَنَّهُ يَعْمَلُ فِيهِ الْإِكْرَاهُ وَالْهَزْلُ چي په دې کي مجبور او توقې خپل عمل کوی.

**تشريح:** په دې عبارت کي علامه مرغيناني رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله د اړخه ددې خواب ورکوی. چه نسب اګرچه داسي شي نه دي چه ماتيدلی شی. خود نسب اقرار په رد کاوه سره رد کيږی. آيا نه ګوري، چه په دې کي اکراه (زبردستی) او توقې (ګپ) خپل عمل کوی. که يوسړي د خپل غلام په نسبت د خپل ځوی کيدلو په اقرار باندې مجبوره کړې شو. او هغه اقرار اوکړو. نو نسب نه ثابتيږی. دغه ډول که يوکس په توقو او مذاق کي اووئيل چه دا زما زوي دي. نو نسب نه ثابتيږی.

فَصَارَ نود داسي شوه. كَمَا إِذَا أَقَرَّ الْمُشْتَرِي عَلَى الْبَائِعِ بِإِعْتَاقِ الْمُشْتَرَى لکه چي مشتری بائع باندې د اخستلی (غلام) د آزادولو اقرار اوکړو. فَكَذَّبَهُ الْبَائِعُ او بائع دې دروغجن کړو. ثُمَّ قَالَ بيا مشتری اووئيل. أَنَا أَعْتَقْتُهُ چي ما دې آزاد کړې دي. يَتَحَوَّلُ الْوَلَاءُ إِلَيْهِ، نو ولاء به هم دده اړخ ته محول کيږی. بِخِلَافِ مَا إِذَا صَدَّقَهُ په خلاف ددې کله چي بائع ددې تصديق اوکړی. لِأَنَّهُ يَدَّعِي بَعْدَ ذَلِكَ نَسَبًا ځکه چي هغه ددې نه روسته د داسي نسب مدعی

[1]) القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كما في كنز (٢٨٥) وتنوير الأبصار (٤\٤٩٦) وملتقى الأبحر (٣٩١\١٣) وخلاصة الفتاوى (٤\١٠٦) نقلاً عن القول الراجح (١٩٤\١٢)



دي. ثَابِتًا مِنَ الْغَيْرِ، کوم چي د غير نه ثابت دي. وَبِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يُصَدِّقْهُ او په خلاف ددې کله چي ده نه تصديق کړې وی. وَلَمْ يُكَذِّبْهُ او نه ئې تکذيب کړې وی. لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُقَرِّ لَهُ ځکه چي دې سره د مقرله حق متعلق شوي دي. عَلَى اعْتِبَارِ تَصْدِيقِهِ دده د تصديق کاوه په اعتبار سره. فَيَصِيرُ كَوَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ نودا د لعان کړې شوي ښځي د بچي پشان شو. فَإِنَّهُ لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْ غَيْرِ الْمُلَاعِنِ، چي دده نسب د غير ملاعن نه نه ثابتيږی. لِأَنَّ لَهُ أَنْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ. ځکه چي ملاعن ته د خپل خان تکذيب کاوه اختيار دي.

**تشريح:** نو د مذکوره مسئلي حکم داسي شو. لکه چي مشتری په بائع باندې اقرار کړې وی. چه ده مشترا (غلام) د بيع نه وړاندې آزاد کړې دي. او بائع دا دروغ اوګرځول. بيا مشتری اووئيل. چه دا ما آزاد کړې دي. نود مشتری آزادول جائز او ولاء دده اړخ ته متحول کيږی. ددې په خلاف که د بچي د قابض غلام د آقا تصديق اوکړو. او وې وئيل. چه آو دا زما زوي دي. نود آقا دعوه به نه ثابتيږی. ځکه چي د غلام د اقرار نه روسته هغه د داسي نسب دعوه کوی. کوم چي د غير نه ثابت دي. يعنی پخپله ئې هم ددې اقرار کړې دي. اوکه د مالك غلام د مالك نه تصديق اوکړو. او نه ئې تکذيب اوکړو. بيا به هم د آقا په دعوه سره نسب نه ثابتيږی. ځکه چي د بچي نسب سره د غلام حق تړلې شوي دي. په دې طريقه که غلام تصديق اوکړی. نو دده نسب به ثابتيږی. نودا بچي د ملاعنه د بچي پشان شو. چه دده نسب د ملاعن سړی نه علاوه د بل چا نه نه ثابتيږی. ځکه چي ملاعن سړي ته د خپل خان تکذيب کاوه اختيار دي. که هغه دا اووائی. چه ما خپلي ښځي ته د زنا تهمت لګولو کي دروغ وئيلي وو. يا غلطي کړې وه. نود بچي نسب به دده نه ثابتيږی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ النَّسَبَ مِمَّا لَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ بَعْدَ ثُبُوتِهِ چي نسب داسي شی دي. کوم چي د ثابتيدلو نه روسته د ماتيدلو احتمال نه لري. وَالْإِقْرَارُ بِمِثْلِهِ او ددې په مثل چي کوم اقرار وی. لَا يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ هغه په رد کاوه سره نه رد کيږی. فَبَقِيَ نو هغه پاته پاتې شو. فَتَمْتَنِعُ دَعْوَتُهُ نود مقر د نسب دعوه ممتنع شوه. كَمَنْ شَهِدَ عَلَى رَجُلٍ بِنَسَبِ صَغِيرٍ لکه مثلاً يوکس په بل چا باندې د يو وړوکی ماشوم د نسب ګواهي ورکړله. فَرُدَّتْ شَهَادَتُهُ لِتُهْمَةٍ او دځه تهمت په وجه د هغه ګواهی رد کړې شوه. ثُمَّ ادَّعَاهُ لِنَفْسِهِ، بيا هغه د خپل بچي دعوه اوکړله.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه نسب د هغه ځيزونو څخه دي. کوم چي د ثابتيدلو نه روسته نه ماتيږی. او د داسي ځيزونو اقرار په رد کاوه سره نه رد کيږی. نود مقر په حق کي پخپل حال باندې پاته پاتې شوه. اګرچه د مقرله په حق کي ثابت نه وی. نو دده پخپل حق کي دعوه کول به باطل وی. لکه چي يو سړی په بل باندې د يو صغير بچي د نسب ګواهي ورکړله. او دځه تهمت په وجه د هغه ګواهي رد شوله. بيا هغه پخپله ددې بچي د نسب دعوه اوکړله. نود هغه دعوه به نه قبليږی.

وَهَذَا لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُقَرِّ لَهُ اودا ځکه چي د اقرار په وجه د مقرله حق متعلق شوي دي. عَلَى اعْتِبَارِ تَصْدِيقِهِ، دده د تصديق کاوه په اعتبار سره. حَتَّى لَوْ صَدَّقَهُ بَعْدَ التَّكْذِيبِ تردې که دده د تکذيب نه روسته تصديق اوکړی. يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهُ، نو نسب د مقرله نه ثابتيږی. وَكَذَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْوَلَدِ دغه ډول د بچي حق هم متعلق شو. فَلَا يَرْتَدُّ بِرَدِّ الْمُقَرِّ لَهُ نود مقرله په رد کاوه سره به نه رد کيږی. وَمَسْأَلَةُ الْوَلَاءِ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ، اود ولاء مسئله هم په دې اختلاف (مبنی) ده. وَلَوْ سُلِّمَ او که اومنلي شی. فَالْوَلَاءُ قَدْ يَبْطُلُ بِاعْتِرَاضِ الْأَقْوَى نو بيا هم ولاء کله کله د يو زيات مضبوط (امر) راپيښيدلو په وجه باطليږی.

**تشريح: قوله: وسالة الولاء** صاحبينو رحمهما الله چي د ولاء مسئلي نه کوم استشهاد کړې دي. د هغې ځواب دادې. چه اول خو په دې سره حجت نه قائميږی. ځکه چي مسئله د ولاء هم په دې اختلاف مبنی ده. يعنی د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به مشتری ته ولاء نه ملاويږی. او که اومنو. چه د ولاء مسئله بالاتفاق ده. بيا هم د ولاء او نسب په منځ کي توپير دي. او هغه داچه ولاء داسي شئ دي. چه هغه د خپل خان نه د زيات مضبوط امر

راپیښیدلو سره باطلیږي.لکه د مور د اړخه د پلار قوم اړخ ته ولاء راښکونکې امر راپیښیدلو سره ولاء راښکلې کیږي.او دلته کې هم په ولاء موقوف باندې ددې نه زیات قوي امر راپیښ شو او هغه د مشتري دعوه ده.نو ولاء موقوف ماته شوه.په خلاف د نسب، چې دا نه ماتیږي. ﴿فلا يصح قياس النسب على الولاء﴾

كَجَرِّ الْوَلَاءِ مِنْ جَانِبِ الْأُمِّ إِلَى قَوْمِ الْأَبِ. لکه د مور د اړخه د پلار قوم اړخ ته ولاء راښکل،

تشریح: د جر ولاء (د ولاء راښکلو) صورت دادې چې یو سړي خپله وینځه آزاده کړله.او آزادې شوې وینځې د زید غلام سره نکاح اوکړله.چه د هغه نه ئې اولاد اوشو.او اولاد څه نقصان اوکړو.نود اولاد د نقصان عقل (او تاوان) به د مور په موالیو باندې وی.ځکه چې د اولاد پلار د اهل ولاء څنې نه دې.نو اولاد د مور قوم سره ملحق شو.تردې چې د اولاد ولاء د خپلې مور تابع شو.د مور آزادونکي لپاره شو.خو که پلار آزاد کړې شو نو هغه به د اولاد ولاء راکاږي.او خپل خان سره به ئې د خپل آزادونکي اړخ ته اوړي. معلومه شوه.چه کله په ضعیف ولاء باندې مضبوط ولاء راپیښ شي.نو ولاء ضعیف ماتوي.او خپل اړخ ته ئې اوړي.بهرحال ولاء ماتیږي.نسب نه ماتیږي.

وَقَدِ اعْتَرَضَ عَلَى الْوَلَاءِ الْمَوْقُوفِ مَا هُوَ أَقْوَى او دلته په ولاء موقوف باندې زیات مضبوط امر راپیښ شو. وَهُوَ دَعْوَى الْمُشْتَرِي او هغه د مشتري دعوه ده. فَيَبْطُلُ بِهِ نو ددې په وجه ولاء باطل شوه. بِخِلَافِ النَّسَبِ عَلَى مَا مَرَّ. په خلاف د نسب،

تشریح: د ولاء موقوف نه مراد هغه دې.کوم چې د بائع د اړخه دې.دې ته ئې ولاء موقوف ځکه اووئیل چه دا تر اوسه پورې په توقف کې دې.تردې که د تکذیب نه روسته تصدیق اوموندې شي.نو هغه اړخ ته به یقیني کیږي.یعنی د مشتري په دعوه سره ماتیږي.

وَهٰذَا يَصْلُحُ مُخْرَجًا عَلَى أَصْلِهِ فِيمَنْ يَبِيعُ الْوَلَدَ او دا مسئله د امام ابوحنیفه رحمه الله په اصول باندې د هغه سړي په حق کې د خروج لاره جوړیدلې شي.څوک چې بچې خرڅ کړي. وَيَخَافُ عَلَيْهِ الدَّعْوَةَ بَعْدَ ذٰلِكَ او ددې نه روسته ده باندې د نسب د دعوه خطره وی. فَيَقْطَعُ دَعْوَاهُ إِقْرَارُهُ بِالنَّسَبِ لِغَيْرِهِ نو دده د غیر نه دده د نسب اقرار کاوه سره دده دعوه قطع کوي.

تشریح: علامه مرغیناني رحمه الله فرماني.چه د بائع مذکوره اقرار د امام ابوحنیفه رحمه الله په اصولو باندې ددې حیله جوړیدلې شي.که یوکس یو صغیر غلام خرڅ کړو.او هغه ته دا خطره شوه.چه ممکن ده.ددې نه روسته څوک د خپل خوی کیدلو دعوه اوکړي.او بیع ماته شي.نود هغه د دعوه ماتولو طریقه داده.چه هغه دې (په غلام باندې) د غیر نه دده د نسب اقرار اوکړي.نودا اقرار به نه ماتیږي.ځکه که دې تصدیق اوکړي.او تکذیب اوکړي. او که سکوت اختیار کړي.بهرحال د مقر دعوه به صحیح نه وی.اود شیخ سرخسي رحمه الله په قول چې کومه حیله د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې هم جاري کیږي.دا ده.چه بائع اقرار اوکړي.چه دا غلام د فلاني مړي زوې دې.نو دده د اړخه به تکذیب نه کیږي.او ددې نه روسته د مقر دعوه نه صحیح کیږي.

## د نصراني او مسلمان مقبوض غلام باندې د نصراني د نسب دعوی کول

قَالَ: (وَإِذَا كَانَ الصَّبِيُّ فِي يَدِ مُسْلِمٍ وَنَصْرَانِيٍّ که یو بچې د یو مسلمان اود یو نصراني په قبضه کې وی. فَقَالَ النَّصْرَانِيُّ: نصراني اووانی. هُوَ ابْنِي چې دا زما زوې دې. وَقَالَ الْمُسْلِمُ او مسلم اووانی. هُوَ عَبْدِي چې زما غلام دې. فَهُوَ ابْنُ النَّصْرَانِيِّ نو هغه به دنصراني زوې وی. وَهُوَ حُرٌّ) او آزاد به وی. لِأَنَّ الْإِسْلَامَ مُرَجِّحٌ ځکه چې اسلام ته ترجیح ورکولې شي. فَيَسْتَدْعِي تَعَارُضًا، او راجح کیدل د تعارض تقاضا کوي. وَلَا تَعَارُضَ او دلته کې هیڅ تعارض نشته. لِأَنَّ نَظَرَ الصَّبِيِّ فِي هٰذَا أَوْفَرُ ځکه چې په دې کې د بچي لپاره د پوره شفقت لحاظ ساتلې شوې [...] شَرَفُ الْحُرِّيَّةِ حَالًا وَشَرَفُ الْإِسْلَامِ مَآلًا، ځکه چې هغه به في الحال د آزادئ شرف او آخر کار د اسلام



شرف حاصل کړي. إِذْ دَلَائِلُ الْوَحْدَانِيَّةِ ظَاهِرَةٌ، ځکه چې د وحدانیت دلائل ښه واضح دی. وَفِي عَكْسِهِ الْحُكْمُ بِالْإِسْلَامِ تَبَعًا او ددې دعکس په صورت کې د اسلام حکم تبعاً دې. وَحِرْمَانُهُ عَنِ الْحُرِّيَّةِ اود ازادئ شرف نه محروم کیدل دی. لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي وُسْعِهِ اكْتِسَابُهَا ځکه چې آزادي حاصلول، دده په اختیار کې نه دی. (وَلَوْ كَانَتْ دَعْوَتُهُمَا دَعْوَةَ الْبُنُوَّةِ او که ددوی دواړو دعوه د خوی کیدلو وی. فَالْمُسْلِمُ أَوْلَى) تَرْجِيحًا لِلْإِسْلَامِ نو مسلمان اولی دې.اسلام ته په ترجیح ور کاوه سره. وَهُوَ أَوْفَرُ النَّظَرَيْنِ او په دوی (دوه) شفقتونوکې کامل شفقت هم دادې.

تشریح: یو بچې د یو مسلمان او یو نصراني په قبضه کې دې.اوس نصراني وانی.چه دا زما زوې دې.او مسلمان وانی.چه دا زما غلام دې.نودا به د نصراني زوې ګرځولې شي.او آزاد به وی.وجه داده.چه اسلام ته په هر موقع باندې ترجیح وی.خود مرجح کیدلو لپاره څه تعارض کیدل پکار دی.او دلته هیڅ تعارض نشته.ځکه چې دا د نصراني زوې جوړولو، او آزاد ګرځولو کې بچي لپاره شفقت زیات دې.چه في الحال هغه د آزادئ شرف حاصلوی.او آخرکار به د اسلام شرف حاصل کړي.ځکه چې دالله تعالی د وحدانیت دلیلونه ښه واضح دی.او که ددې په عکس اوکړې شي.یعنی د مسلمان غلام اوګرځولې شي.نو دا به د خپل آقا تابع کیدلو سره في الحال د اسلام په حکم کې خو داخل شي.خود آزادئ څخه به محروم وی.ځکه چې آزادي حاصلول دده په اختیار کې نه دی.او که دوی دواړه د خوی کیدلو دعوه اوکړي.نو مسلمان ته به ترجیح ورکولې شي.ځکه چې اسلام راجح دې.

تنبیه: اعتراض: د نصراني زوې ګرځولو باندې دا اعتراض کیږي.چه دا د الله تعالی د قول ﴿وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ﴾ خلاف دې.ځکه چې دا هم په دې دال دې.چه مؤمن غلام اګرچه غلام وی.د مشرك نه غوره دې. اګرچه آزاد وی.پاتی شو د توحید دلیلونه. نو هغه اګرچه ښکاره دی.خود دین سره الفت او مینه مضبوط مانع دې؟

جواب: دادې.چه آیت ﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ﴾ آباء لپاره د دعوه د اولاد موجب دې.اود نسب مدعی پلار دې.ځکه چې دې کې دعوه د نقض محتمل نه ده.نو دواړه آیتونه متعارض شو.بیا کوم احادیث چې د بچو په حق کې په شفقت او نظرباندې دلالت کوي.هغه زیات دی. ﴿فكانت أقوى من المانع﴾ (عنایه)

## د ښځې په یو ماشوم باندې د نسب دعوی کول

قَالَ (وَإِذَا ادَّعَتِ امْرَأَةٌ صَبِيًّا یوې ښځې د بچي په اړه کې دعوه اوکړله. أَنَّهُ ابْنُهَا چې دا زما زوې دې. لَمْ تَجُزْ دَعْوَاهَا نو ددې دعوه به جائز نه وی. حَتّٰى تَشْهَدَ امْرَأَةٌ عَلَى الْوِلَادَةِ) تردې چې یوه ښځه ددې بچي په زیږیدل باندې ګواهي ورکړي. وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ د مسئلې مطلب دادې. أَنْ تَكُونَ الْمَرْأَةُ ذَاتَ زَوْجٍ چې ښځه میړه والا وی. لِأَنَّهَا تَدَّعِي تَحْمِيلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چې دا نسب په غیر باندې د اچولو دعوه کوي. فَلَا تُصَدَّقُ إِلَّا بِحُجَّةٍ، نود دلیل نه بغیر به تصدیق نشي کولې. بِخِلَافِ الرَّجُلِ په خلاف د سړي ، لِأَنَّهُ يُحَمِّلُ نَفْسَهُ النَّسَبَ، چې هغه نسب په خپل خان باندې اچوي. ثُمَّ شَهَادَةُ الْقَابِلَةِ كَافِيَةٌ فِيهَا بیا په دې کې د دائی شهادت کافی دې. لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى تَعْيِينِ الْوَلَدِ. ځکه چې اړتیا صرف د بچي په معین کولوکې دې. أَمَّا النَّسَبُ پاتې شو نسب، فَيَثْبُتُ بِالْفِرَاشِ الْقَائِمِ نو هغه په فراش سره ثابتیږي.کوم چې في الحال قائم دې. وَقَدْ صَحَّ او دا صحیح خبره ده. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَبِلَ شَهَادَةَ الْقَابِلَةِ عَلَى الْوِلَادَةِ}[1] چې نبی کریم ﷺ په زیږیدل باندې د دائی ګواهي قبوله کړې ده.

تشریح: یوې ښځې دعوه اوکړله.چه دا بچې زما زوې دې.نو ترکومه پورې چې یوه ښځه ددې بچي په زیږیدل باندې ګواهي ورنکړي.د هغه دعوه به جائز نه وی.علامه مرغیناني رحمه الله دعامو مشائخو رحمهم الله تابعداری

---

1) تقدم تخریجه فی کتاب الشهادات)_

كوي.فرمائي.چه په دې مسئله كې دا قيد دې.چه دا ښځه ميړه والا وي.او ميړه ددې بچي انكار كوي.ځكه چې ښځه ميړه باندې نسب لازمول غواړي.او الزام لپاره دليل ضروري دې.اود نسب لازميدلو سبب يعنى نكاح اګرچه قائم ده.خو اړتيا د ولادت ثابتولو دې.او نكاح د ولادت موجب نه ده.نو بې دليله (او بې ثبوته) به د ښځې د قول تصديق نشي كولې.په خلاف د سړي ، چې هغه نسب پخپله خپل ځان باندې لازموي.بيا د دې ښځې زيګولې دې پاتې شو دده نسب،نو هغه به د فراش په وجه ثابتيږي.كوم چې في الحال موجود دې.اودا خبره د حديث نه ثابته ده.چه نبى كريمﷺ د دائى ګواهى جائز ګرځولې ده.لكه چې دارقطنى په سنن كې د حضرت حذيفهرضی الله عنه نه روايت كړې دې. ﴿أن النبىﷺ أجاز شهادة القابلة﴾

(وَلَوْكَانَتْ مُعْتَدَّةً) او كه دا ښځه معتده وي. (فَلَابُدَّ مِنْ حُجَّةٍ تَامَّةٍ) نو پوره حجت ضروري دې. عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ،اودا په كتاب الطلاق كې تير شوي دى. وَإِنْ لَمْ تَكُنْ مَنْكُوحَةً او كه نه منكوحه وي. وَلَا مُعْتَدَّةً او نه معتده وي. قَالُوا:نو مشائخ فرمائي. يَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْهَا بِقَوْلِهَا چې د ښځې خبره به د بچي نسب صرف ددې په ونيلو سره ثابتيږي. لِأَنَّ فِيهِ إِلْزَامًا عَلَى نَفْسِهَا ځكه چې په دې كې په ځان باندې لازمول دى. دُونَ غَيْرِهَا په غير باندې (لازمول) نه دى. (وَإِنْ كَانَ لَهَا زَوْجٌ) او كه ددې خوك ميړه وي. وَزَعَمَتْ او هغه ښځه دا اووائي. أَنَّهُ ابْنُهَا مِنْهُ چې دا هلك زما هم ددې ميړه نه (پيدا) دى. وَصَدَّقَهَا او ميړه ددې تصديق اوكړي. فَهُوَ ابْنُهُمَا نو دا به ددوی دواړو زوې وي. وَإِنْ لَمْ تَشْهَدْ امْرَأَةٌ) اګرچه هيڅ يوه ښځه ګواهى ونكړي. لِأَنَّهُ الْتَزَمَ نَسَبَهُ فَأَغْنَى ذَلِكَ عَنِ الْحُجَّةِ. ځكه چې ميړه دده د نسب التزام كړې دې.هغه د دليل نه بې نيازه كړله.

**تشريح:** اوكه دا ښځه معتده وي.يعنى د طلاق يا وفات په عدت كې وي.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز واضح دليل ضروري دې.يعنى د دوې (دوه) سړو يا د يو سړي او د دوې (دوه) ښځو ګواهى ضروري ده.البته كه حمل ښكاره شو.يا د ميړه د اړخه اقرار او موندې شي.نو په دې صورت كې نسب بلاشهادت ثابتيږي.اوكه دا منكوحه يا معتده نه وي.نود مشائخو رحمهم الله په قول به د بچي نسب صرف د ښځې په وينا سره ثابتيږي.ځكه چې دې صورت كې ښځه پخپله خپل ځان باندې لازموي.په غير باندې نه لازموي.

(وَإِنْ كَانَ الصَّبِيُّ فِي أَيْدِيهِمَا) او كه بچې د دواړو په قبضه كې وي. وَزَعَمَ الزَّوْجُ او ميړه اووائي. أَنَّهُ ابْنُهُ چې دا بچې زما زوې دې. مِنْ غَيْرِهَا چې ددې ښځې نه دعلاوه (بلې ښځې) نه پيدا دې. وَزَعَمَتْ او ښځه اووائي. أَنَّهُ ابْنُهَا مِنْ غَيْرِهِ چې دا زما زوې دې.چه ددې ميړه نه د علاوه (بل خاوند) نه پيدا دې. فَهُوَ ابْنُهُمَا) نو دا به ددوی دواړو زوې وي. لِأَنَّ الظَّاهِرَ ځكه چې ښكاره هم دا ده. أَنَّ الْوَلَدَ مِنْهُمَا چې بچې هم ددوی دواړو نه پيدا دې. لِقِيَامِ أَيْدِيهِمَا أَوْ لِقِيَامِ الْفِرَاشِ بَيْنَهُمَا، ددوی دواړو د قبضې يا ددوی د نكاحی فراش قائميدلو په وجه. ثُمَّ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُرِيدُ إِبْطَالَ حَقِّ صَاحِبِهِ ددې نه روسته دوی كې هريو د بل حق ختمول غواړي. فَلَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ، نو تصديق به نشي كولې. وَهُوَ نَظِيرُ ثَوْبٍ فِي يَدِ رَجُلَيْنِ او دا دهغه كپړې مثال دې. كومه چې ددوې (دوه) سړو په قبضه كې وي. يَقُولُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او په دوی كې هريو دا وائي. هُوَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ آخَرَ غَيْرِ صَاحِبِهِ چې دا زما او د فلانی په منځ كې مشترك ده. يَكُونُ الثَّوْبُ بَيْنَهُمَا نو كپړه به په دوی دواړو كې مشترك وي. إِلَّا أَنَّ هُنَاكَ يَدْخُلُ الْمُقَرُّ لَهُ فِي نَصِيبِ الْمُقِرِّ صرف دومره خبره ده.چه د كپړې په مسئله كې به مقرله د مقر په حق كې داخل شي. لِأَنَّ الْمَحَلَّ يَحْتَمِلُ الشَّرِكَةَ، ځكه چې محل د شركت قابل دې. وَهَاهُنَا لَا يَدْخُلُ لِأَنَّ النَّسَبَ لَا يَحْتَمِلُهَا او دلته به نه داخليږي.ځكه چې نسب كې د شركت احتمال نشته.

**تشريح:** اوكه دا بچې د ميړه او ښځې دواړو په قبضه كې وي.او ميړه اووائي.چه دا بچې زما زوې دې.خو ددې



ښځې نه علاوه د بلې ښځې نه پيدا دې.او ښځه اووائي.چه دا زما زوې دې.خو ددې ميړه نه علاوه د بل ميړه نه پيدا دې.نو بچې به د دواړو زوې ګرځولې شي.(كله چې بچې د خپل ذات نه تعبير نشي كولې.اوكه تعبير كولې شي.نو هم دده قول به معتبر وي.اوس چې دې دچا تصديق اوكړي.هم دهغه ځخه به نسب ثابتيږي) ځكه چې هركله چې ددوی قبضه او نكاحی فراش قائم دې.نو ښكاره هم داده.چه بچې ددوی دواړو دې.خو په دوی كې هريو كس د بل حق ختمول غواړي.نو په بل باندې به د هيڅ يوكس تصديق نشي كولې.ددې مثال داسې دې.لكه چې د كپړې يو تهان د دوې (دوه) سړو په قبضه كې وي.او په دوی كې هريو كس دعوه كوي.چه دا تهان زما اود فلانی سړي په منځ كې مشترك دې.يعنى د قابض نه علاوه د بل كس نوم اخلي.نو تهان به د دواړو په منځ كې مشترك وي.فرق صرف دادې.چه د تهان په مسئله كې به د هر قابض مقرله، د مقر په برخه كې داخليږي.اود نسب په مسئله كې به نه داخليږي.ځكه چې كپړه قابل د شركت ده.او په نسب كې د شركت احتمال نشته.

## د ملك يمين په اعتماد ښځې سره د صحبت كولو مسئله

قَالَ (وَمَنْ اشْتَرَى جَارِيَةً) يوكس يوه وينځه واخستله. فَوَلَدَتْ وَلَدًا عِنْدَهُ هغې د اخستونكي سره بچې راوړلو. فَاسْتَحَقَّهَا رَجُلٌ و يوكس د وينځې استحقاق ثابت كړو. غَرِمَ الْأَبُ قِيمَةَ الْوَلَدِ يَوْمَ يُخَاصِمُ) نو پلار به د بچي د جګړې د ورځې د قيمت تاوان وركوي. لِأَنَّهُ وَلَدُ الْمَغْرُورِ ځكه چې دا د دهوكه كړې شوى بچې دې. فَإِنَّ الْمَغْرُورَ مَنْ يَطَأُ امْرَأَةً مُعْتَمِدًا عَلَى مِلْكِ يَمِينٍ أَوْ نِكَاحٍ ځكه مغرور هغه كس دې.كوم چې د ملك يمين يا د ملك نكاح په اعتماد باندې د يوې ښځې سره وطى اوكړي. فَتَلِدُ مِنْهُ او هغه دده نه بچې راوړي. ثُمَّ تُسْتَحَقُّ بيا وينځه په استحقاق كې واخستلې شي.

**تشريح:** زيد يوه وينځه واخستله.هغې نه دده يو بچې پيدا شو.او زيد دده د نسب دعوه اوكړله.بيا دا وينځه د بل يو كس اوختله.نو پلار (يعنى زيد) به د بچي د قيمت تاوان وركوي.او قيمت كې به د جګړې د ورځې اعتبار كيږي.او بچې به آزاد وي.ځكه چې دا ولد المغرور (د دهوكه كړې شوى) دې. چې دا په اجماع د صحابورضی الله عنهم خپل قيمت سره آزاديږي.مغرور هغه سړي ته وائي.كوم چې د ملك يمين يا د ملك نكاح په اعتماد يوې ښځې سره صحبت اوكړي.او ددې نه بچې پيدا شي.بيا دا د بل چا ښځه اوخيجي.

وَوَلَدُ الْمَغْرُورِ حُرٌّ بِالْقِيمَةِ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ(١) اود دهوكه كړې شوى بچې په اجماع د صحابورضی الله عنهم په قيمت سره آزاديږي.

**تشريح:** شيخ ابوبكر رازى رحمه الله په شرح مختصر الطحاوى كې ذكر كړې دى.چه په صدر اول اود ښارونو په فقهاؤكې په دې اړه كې هيڅ اختلاف نشته.چه د دهوكه كړې شوى بچې حرالاصل وي.او په دې اړه كې هم څه اختلاف نشته.چه دا په پلار باندې مضمون وي. اختلاف صرف د ضمان په كيفت كې دې.د حضرت عمررضی الله عنه قول دې. ﴿يفك الغلام بالغلام والجارية بالجارية﴾ يعنى ﴿إن كان الولد غلاماً فعلى الأب غلام مثله و إن كان جارية فعليه جارية مثلها﴾ حضرت علىرضی الله عنه فرمائي.چه پلار باندې د بچي قيمت واجب دې.زمونږ اصحاب هم دې اړخ ته تلي دى.اود حضرت عمررضی الله عنه د قول تاويل هم دا دې.چه ﴿يفك الغلام بقيمة الغلام﴾

وَلِأَنَّ النَّظَرَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ وَاجِبٌ او په دې وجه هم چې د دواړو طرفونو لحاظ ضروري دې. فَيُجْعَلُ الْوَلَدُ حُرَّ الْأَصْلِ فِي حَقِّ أَبِيهِ نود پلار په حق كې به بچې اصلى آزاد، رَقِيقًا فِي حَقِّ مُدَّعِيهِ او دده د مدعى په حق كې به غلام ګرځولې شي. نَظَرًا لَهُمَا، ثُمَّ د دواړو د لحاظ ساتلو په وجه. الْوَلَدُ حَاصِلٌ فِي يَدِهِ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ بيا بچې د پلار په

---

١) قال الزيلعى رحمه الله غريب وروى ابن أبى شيبة فى مصنفه فى البيوع ..عن علىرضی الله عنه فى رجل إشترى جارية فولدت منه أولاداً ثم أقام رجل البينة أنها له قال ترد عليه ويقوم عليه ولدها فيغرم الذى باعها ما غررها (نصب الراية ٤\٢٤٨)_

قبضه کي د تعدی ( زياتی ) نه بغير راغلې دي. فَلَا يَضْمَنُهُ نو هغه به ضامن نه وی. اِلَّا بِالْمَنْعِ خود منع کاوه په وجه (به ضامن وی. كَمَا فِي وَلَدِ الْمَغْصُوبَةِ، لكه څنګه چې د غصب کړې شوې وينځې په بچې کي کيږي. فَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ قِيمَةُ الْوَلَدِ يَوْمَ الْخُصُومَةِ نود بچي هغه قيمت به معتبر وی. کوم چې د جګړې په ورځ دي. لِأَنَّهُ يَوْمُ الْمَنْعِ څکه چې د منع کاوه ورځ هم هغه ده.

تشريح: دا دليل عقلي دي. چه د مور د مالك اود بچي د پلار دواړو لحاظ ساتل ضروری دی. نود بچی د پلار په لحاظ سره بچي اصلي آزاد اود مور د مالك په لحاظ سره غلام ګرځولې شی. چه د دواړو طرفونو لحاظ اوشي. او هغه هم دا دي. چه د قيمت په عوض آزاد اوګرځولې شي. بيا مذکوره بچي د پلار په عوض کي تعدی نه بغير راغلې دي. نو هغه مستحق لپاره صرف په دې وجه ضامن دي. چه هغه ددې د ور کاوه نه منع کوی. لکه څنګه چې د غصب کړې شوې وينځې په بچي کي کيږی. نود بچي به هم هغه قيمت معتبر وی. کوم چې د جګړې په ورځ وو. څکه چې ده هم هغه ورځ منع کړې دي.

(وَلَوْمَاتَ الْوَلَدُ) وکه بچي مړ شو. (لَاشَيْءَ عَلَى الْأَبِ) نو په پلار به هيڅ تاوان نه وی. لِانْعِدَامِ الْمَنْعِ، د منع کاوه نه موندلو په وجه. وَكَذَا لَوْ تَرَكَ مَالًا دغه ډول که بچي څه مال پرينښودي وی. لِأَنَّ الْإِرْثَ لَيْسَ بِبَدَلٍ عَنْهُ، څکه چې ميراث ددې بچي عوض نه دي. وَالْمَالُ لِأَبِيهِ او مال به د هغه د پلار وی. لِأَنَّهُ حُرُّ الْأَصْلِ فِي حَقِّهِ څکه چې بچي د پلار په حق کي اصلي آزاد دي. فَيَرِثُهُ نو پلار به د هغه وارث وی.

تشريح: په مذکوره صورت کي که د جګړې نه وړاندې د بچي انتقال اوشي. ( يعني مړشی ). نو دده په پلار به هيڅ تاوان نه وی. بلکه هغه به صرف مستحق وينځه حواله کوی. په دې وجه که بچي حقيقتاً د مستحق مملوك وو. بيا به خودا مضمون نه وو. نود حقيقي ملکيت نه کيدلو په صورت کي به په درجه اولی مضمون نه وی. اوکه ددې بچي څه ترکه وی. نو د هغې وارث به د هغه پلار وی. څکه چې د پلار په حق کي بچي حرالاصل دي.

(وَلَوْ قَتَلَهُ الْأَبُ) او که پلار بچي مړ کړو. (يَغْرَمُ قِيمَتَهُ) نو د هغه د قيمت تاوان به ورکوی. لِوُجُودِ الْمَنْعِ د منع کاوه موجود کيدلو په وجه. وَكَذَا لَوْ قَتَلَهُ غَيْرُهُ دغه ډول که د پلار نه علاوه بل چا مړ کړو. فَأَخَذَ دِيَتَهُ، او پلار د هغه ديت واخستلو. لِأَنَّ سَلَامَةَ بَدَلِهِ لَهُ كَسَلَامَتِهِ، څکه چې پلار ته د هغه عوض ملاويدل، د خپل بچي ملاويدلو په مرتبه کي دی. وَمَنْعُ بَدَلِهِ كَمَنْعِهِ او د پلار ديت منع کول د بچي د منع کاوه په مرتبه کي دی. فَيَغْرَمُ قِيمَتَهُ نود هغه د قيمت به ضامن وی. كَمَا إِذَا كَانَ حَيًّا لکه څنګه چې د بچي د ژوند په حالت کي کيدل. (وَيَرْجِعُ بِقِيمَةِ الْوَلَدِ عَلَى بَائِعِهِ) او د بچي قيمت به د خپل بائع نه واپس اخلی. لِأَنَّهُ ضَمِنَ لَهُ سَلَامَتَهُ څکه چې بائع مشتری لپاره د مبيعه وينځې د سلامتيا ضامن وو. كَمَا يَرْجِعُ بِثَمَنِهِ، لکه څنګه چې به دده د مور ثمن واپس اخلی. بِخِلَافِ الْعُقْرِ په خلاف د مهر مثلی. لِأَنَّهُ لَزِمَهُ لِاسْتِيفَاءِ مَنَافِعِهَا څکه چې دا خو د وينځې د منافع حاصلولو په وجه لازم شوې دي. فَلَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْبَائِعِ، نودا د بائع نه واپس نشی اخستلې. وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

[illegible] ز مړ کړو. نو دده د قيمت به ضامن وی. څکه چې دده د اړخه منع کول اوموندلی شو. دغه [illegible] کړو. او پلار د هغه د قيمت په اندازه د هغه ديت (او تاوان) واخستلو. نو لکه څنګه [illegible] کي پلار تاوان ورکړې وو. دغه ډول به اوس هم دده پلار مستحق ته د بچي د قيمت تاوان [illegible] د بچي قيمت او د هغه د مور يعنی د وينځې ثمن د خپل بائع نه وصول کوی. څکه چې [illegible] جزء دي او [illegible] بيع ده. او بائع د مبيع د سلامتيا ضامن وی. نود مبيع د عدم سلامتيا [illegible] مشتری [illegible] ن وصولولو حقدار وی. خود وينځې کوم عقر (تاوان يعنی مهر مثل) [illegible] ورکول لازم [illegible] اخستلې. څکه چې هغه خو د بضع د منافعو حاصلولو بدل دي. [illegible] الائمة الثلاثة يرجع [illegible]



# كتاب الاقرار

ژباړه: ( دا) کتاب د اقرار( په بيان کي ) دي.

تشريح: المناسبة بين الكتابين ۞ د مدعی دعوی کله مدعی عليه اړخ ته متوجه شی. نو مدعی عليه که ددې اقرار کوی. نوخبره لنډيز شوه اوکه انکار کوی. نودا به د جګړې سبب جوړيږی. او خصومت د صلح مستدعی (او مقتضی ) وی. نوځکه ئې په دې پسې د صلح حکم بيان کړې دې

ﷺ بيا د اقرار مقدم کاوه وجه داده. چه اقرار قريب تر حق دي. څکه چې د مدعی پخپله دعوه کي ،اود مقر پخپل اقرار کي رشتونې کيدل غالب دی. څکه چې عقل مند سړې پخپل خان باندې د دروغو اقرار نه کوی. چې ددې په وجه دده يا دده د مال نقصان اوشی. نو فی نفسه د رشتياؤ اړخ راجح شو. او د اقرار حق قريب تر د مسلمان حال سره څکه دې. چه د دعوې نه بغير د اقرار احکام بيانوی.

حجية الاقرار ۞ ① اقرار يوشرعي حجت دې ددې حجيت د کتاب الله، نه هم ثابت دې. د الله تعالی ارشاد دي. ﴿وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ﴾ پکار ده. چه اوبنائی ( اقرار اوکړی ) هغه سړې په چا چې حق ( قرض) دې. که اقرار [illegible]ت نه وې. نو ددې حکم به هيڅ مطلب نه وو. ② اود صحيح احاديثو نه هم ثابت دې. نبی کريم ﷺ حضرت ماعز ؓ باندې ددوی د زنا اقرار په وجه د رجم حکم اوفرمائيلو. ③ سد امت محمديه په دې خبره باندې اجماع ده. چه په اقرار د مقر سره حدود او قصاص ثابتيږی. نو مال به په درجه اولی ثابتيږی.

## د اقرار شرعي حيثيت

قَالَ (وَإِذَا أَقَرَّ الْحُرُّ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ بِحَقٍّ کله چې اقرار اوکړی. آزاد، عاقل، بالغ د يو حق، لَزِمَهُ إِقْرَارُهُ نو دا اقرار به په ده باندې لازم وی. مَجْهُولًا كَانَ مَا أَقَرَّ بِهِ د کوم شئ اقرار ئې چې کړې دې. که دا مجهول وی. أَوْ مَعْلُومًا) اوکه معلوم وی.

تشريح: کله چې څوك آزاد، عاقل، بالغ سړې په بيدارئ کي خوشحالئ سره، يا عبد ماذون ،يا صبی ماذون، يا څوك ناپوهه د يو حق اقرار اوکړی. نو دده اقرا رصحيح دې. اګرچه د مجهول حق اقرار اوکړی. څکه چې اقرار لپاره د مقر به مجهول کيدل مضر نه دی.

تنبيه: اقرار خو نه مکمل طور باندې اخبار دې. او نه مکمل طور باندې انشاء ده. بلکه کله اخبار دې. اوکله انشاء ده. يعنی د اقرار مقصد دا وی. چه د غير حق لازم ښکاره کړی. دا نه چې بالفعل دا ايجاد کړی. لکه څنګه چې انشاء په عقود کي کيږی. نو که څوك سړې د طلاق يا عتاق په زبردستئ سره اقرار اوکړی. نو اقرار صحيح نه دې. څکه چې د دروغو دليل يعنی اکراه (او زبردستی ) موجود ده. او اقرار اخبار دې. چه دې کي د رشتياؤ او دروغو احتمال دې. نود لفظ نه ددې د مدلول لفظي وضعي تخلف جائز دې. که اقرار مکمل انشاء وې. نو تخلف به صحيح نه وو. څکه چې انشاء کي د مدلول لفظي وضعي تخلف ممتنع دې. اوکه مقرله د مقر اقرار، رد کاوه نه روسته قبول کړی. نو صحيح نه دې. که اقرار مکمل اخبار وې. نو قبلول به صحيح وو. په درمختار وغيره کي دې باندې نور ډير مسائل متفرع دی.، ،من شاء فليراجع اليه،،

اعْلَمْ أَنَّ الْإِقْرَارَ إِخْبَارٌ عَنْ ثُبُوتِ الْحَقِّ پوهيدل پکار دی. چه اقرار د حق ثابتيدلو خبر ورکوی.

تشريح: اقرار د قرار نه مشتق دې. په معنی د ثبوت سره. ﴿يقال قرار الشئ إذا ثبت﴾ او په اصطلاح د شريعت کي د اقرار تعريف دادې. ﴿هو إخبار عن ثبوت حق الغير على نفسه﴾ يعنی اقرار د غيرسړی د هغه حق خبر ور کاوه ته وائی. کوم چې په مقر باندې لازم او ثابت وی. تعريف کي لفظ د علی (کوم چې مفيد د ضرر دې) نه معلوميږی. که د حق خبر د خپل ذات د نفع لپاره وی. نو هغه به اقرار نه وی. بلکه هغې ته به دعوه وائی. اود نفسه قيد نه معلومه شوه. که د حق خبر په بل سړی باندې وی. نو هغه به هم اقرار نه وی. بلکه هغې ته به شهادت وائی. څوك چې اقرار اوکړی. هغې ته مقر، اود کوم کس حق چې پخپل خان باندې ثابت کړی. هغه ته

مقرله، او دغه چې اقرار اوکړي هغې ته مقر به وائي. اقرار اخبار دې او که انشاء ده؟

تنبیه:قوله: أعلم أن الإقرار إخبار........ دې عبارت سره د صاحب دهدايه رحمه الله مقصد د اقرار تعريف نه دې تردې چې دا اعتراض وارد شي چه دا دعوه او شهادت ته هم ګډ دې.نو تعريف د دخول دغير نه مانع نشو.بلکه دده مقصد صرف دا خودل دي.چه ماضي کي کوم حق ثابت دې.اقرار هم دهغې خبر ورکوي.ابتداء کي د کوم حق انشاء نه ده.چه کوم مسائل د اقرار په اخبار کيدلو اود انشاء نه کيدلو باندې مبني دي.د هغې نه آشکال واقع نشي.مثلاً[1] څوك سړې د يو داسې شئ اقرار اوکړي.چه د هغې مالك نه دې.د هغه اقرار صحيح کيږي.تردې چې دې کله هم د هغې مالك شي.هغه ته به د ادا کاوه حکم ورکولې شي.که انشاء صحيح وې.نو اقرار به صحيح نه وو.څکه چې د اقرار په وخت مقر ددې مالك نه وو.[2] که يو مسلمان د شرابو اقرار اوکړي.نو اقرار صحيح دې.تردې چې ده ته به حکم کولې شي.چه هغه مقرله ته شراب اوسپاري.که اقرار انشاء وي.نود مسلمان د اړخه د شرابو ملکيت لازميږي.حالانکه مسلمان د شرابو نه بخپله مالك کيدلې شي.نه بل څوك مالك کولې شي.[3] د کوم بيمار په ذمه چې څه پور نه وي.که هغه د خپل واره مال يو اجنبي لپاره اقرار اوکړي.نود هغه اقرار صحيح دې.د وارثانو په اجازت باندې موقوف نه دې.که اقرار انشاء وي.نود وارثانو د اجازت په صورت کي به صرف ثلث مال نه نافذ کيدلو.[4] که د عبد ماذون په قبضه کي څه مال عين وي.او هغه ددې د چا لپاره اقرار اوکړي.نودا صحيح دې.که اقرار انشاء وې.نو صحيح به نه وو.څکه چې د غلام د اړخه اقرار تبرع ده.او هغه د تبرع اهل نه دې. (نتائج، درمختار)

## د اقرار لازميدل

وَأَنَّهُ مُلْزِمٌ او اقرار لازميږي. لِوُقُوعِهِ دَلَالَةً،څکه چې هغه دليل دې. د هغې د واقع کيدلو. أَلَا تَرَىٰ آيا نه ګورې. كَيْفَ أَلْزَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاعِزًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ الرَّجْمَ بِإِقْرَارِهِ چې نبي کريم ﷺ حضرت ماعز رضي الله عنه باندې د هغه په اقرار سره، وَتِلْكَ الْمَرْأَةَ بِاعْتِرَافِهَا. ([1])او په هغه زانيه ښځه باندې د هغې په اقرار سره رجم لازم کړو. وَهُوَ حُجَّةٌ قَاصِرَةٌ لِقُصُورِ وِلَايَةِ الْمُقِرِّ عَنْ غَيْرِهِ او اقرار حجت قاصره دې.په نورو باندې د مقر ولايت قاصر کيدلو په وجه، فَيَقْتَصِرُ عَلَيْهِ.نودا به د مقر پورې محدود وي.

تشريح: د سړي اقرار ملزم وي.يعني اقرار کونکي چې د کوم شئ اقرار کړې دې هغه دده په ذمه لازميږي.څکه اقرار ددې خبرې دليل دې.چه هغه د کوم شئ اقرار خبر ورکړې دې.هغه واقع شو.څکه چې اقرار د رشتيا او دروغو په منځ کي دائر دې.لکه چې حضرت ماعز رضي الله عنه باندې ددوی د زنا په اقرار سره، غامديه مزنيه ښځې باندې ددې په اقرار سره رجم لازميدل، د صحيحينو حديث نه ثابت دی.خو اقرار چونکه حجت قاصره دې.په دې وجه دا صرف مقر پورې ( محدود) وي.په بل باندې نه لازميږي.په خلاف د ګواهئ،چه دا حجت متعديه دې.

وَشَرْطُ الْحُرِّيَّةِ او د آزادئ شرط نې اولګولو. لِيَصِحَّ إِقْرَارُهُ مُطْلَقًا، چې دده اقرار مطلقاً صحيح وی. فَإِنَّ الْعَبْدَ الْمَأْذُونَ لَهُ وَإِنْ كَانَ مُلْحَقًا بِالْحُرِّ فِي حَقِّ الْإِقْرَارِ،څکه چې عبد ماذون داقرار په حق کي اګرچه د آزاد سره ملحق دې. لَكِنَّ الْمَحْجُورَ عَلَيْهِ لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِالْمَالِ خود عبد محجور مالي اقرار صحيح نه دې. وَيَصِحُّ بِالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ اود حدودو او قصاص صحيح دې. لِأَنَّ إِقْرَارَهُ عُهِدَ مُوجِبًا څکه چې دده اقرار هم ملزم معلوم شوې دې. لِتَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ دده سټ سره د دين د متعلق کيدلو په وجه، وَهِيَ مَالُ الْمَوْلَىٰ حالانکه دده سټ د آقا مال دې. فَلَا يُصَدَّقُ عَلَيْهِ نود آقا په مال به دده تصديق نه کيږي. بِخِلَافِ الْمَأْذُونِ په خلاف د عبد ماذون، لِأَنَّهُ مُسَلَّطٌ عَلَيْهِ مِنْ جِهَتِهِ، څکه چې هغه مال باندې مسلط دې.د آقا د طرفه، وَبِخِلَافِ الْحَدِّ وَالدَّمِ او په خلاف د حدود او قصاص، لِأَنَّهُ

[1])تقدم تخريجه في كتاب الحدود)_



مُبْقًى عَلَىٰ أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِي ذٰلِكَ، څکه چې دې کي هغه اصلي آزادئ باندې پاته دې. حَتَّىٰ لَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْمَوْلَىٰ عَلَى الْعَبْدِ فِيهِ، تردې چې دې کي د آقا اقرار خپل غلام باندې صحيح نه دې.

تشريح: د مقر د آزاد کيدلو شرط څکه دې.چه دده اقرار مطلقاً صحيح وی.يعنی مال وغيره ټولو ته ګډ وي.څکه چې عبد ماذون د اقرار په اړه کي ،اګرچه ملحق بالاحرار دې.د عبد محجور مالي اقرار صحيح نه دې.البته د حدودو اوقصاص اقرار ئې صحيح دې.وجه داده.که د عبد محجور مالي اقرار صحيح وی.نو دده په سټ به لازم وی.حالانکه دده سټ دده د مالك مال دې.په خلاف د عبد ماذون، چې هغه په مال باندې بخپله د مالك د اړخه مسلط دې.او په خلاف د حدودو او قصاص چې دې کي عبد محجور اصلي آزادئ باندې پاته دې.تردې چې په دې کي د مولا پخپل غلام باندې اقرار کول صحيح نه دی.څکه چې سزا د نقصان په بنا (بنياد) باندې کيږي.او جنايت ( جرم او نقصان) دده په مکلف کيدلو باندې مبني دې.او مکلف کيدل د آدميت ( د سړي ) د خواصو څنې دې.او آدميت غلامئ سره زائل کيږي.

وَلَا بُدَّ مِنَ الْبُلُوغِ وَالْعَقْلِ او عقل او بلوغ هم ضروري دې. لِأَنَّ إِقْرَارَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ غَيْرُ لَازِمٍ څکه چې د بچي او ليوني اقرار نه لازميږي. لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الْإِلْتِزَامِ، د التزام اهليت نه کيدلو په وجه، إِلَّا إِذَا كَانَ الصَّبِيُّ مَأْذُونًا لَهُ خو کله چې بچي ماذون له وی. لِأَنَّهُ مُلْحَقٌ بِالْبَالِغِ بِحُكْمِ الْإِذْنِ، څکه چې هغه د اجازت په حکم بالغ سره ملحق دې.

تشريح: د مقر عاقل، بالغ کيدل څکه ضروري دی.چه ماشوم او ليونې پخپل خپل خان باندې د څه شئ لازمولو لياقت ( او قابليت) نه لري.البته که ماشوم ماذون فی التجارت وی.نو هغه د تجارت په وجه بالغانو سره ملحق (او مولښتی ) دې.

وَجَهَالَةُ الْمُقَرِّ بِهِ لَا تَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ، اود مقر به مجهول کيدل د اقرار صحيح کيدلو نه مانع نه دی. لِأَنَّ الْحَقَّ قَدْ يَلْزَمُهُ مَجْهُولًا څکه چې کله سړي باندې مجهول حق لازميږي. بِأَنْ أَتْلَفَ مَالًا په دې طريقه چې داسې مال ضائع کړي. لَا يَدْرِي قِيمَتَهُ چې د هغې قيمت معلوم نه وی. أَوْ يَجْرَحَ جِرَاحَةً يا نې داسې زخم اولګولو. لَا يَعْلَمُ أَرْشَهَا چې د هغې جرمانه معلومه نه وی. أَوْ تَبْقَىٰ عَلَيْهِ بَاقِيَةُ حِسَابٍ يا په ده باندې څه حساب پاته دې. لَا يُحِيطُ بِهِ عِلْمُهُ، چې هغه دې نه پيژني. وَالْإِقْرَارُ إِخْبَارٌ عَنْ ثُبُوتِ الْحَقِّ او اقرار د حق ثابتيدلو خبر ورکول دی. فَيَصِحُّ بِهِ،نودا دمجهول سره هم صحيح دې. بِخِلَافِ الْجَهَالَةِ فِي الْمُقَرِّ لَهُ په خلاف د مقر له د جهالت، لِأَنَّ الْمَجْهُولَ لَا يَصْلُحُ مُسْتَحِقًّا، څکه چې مجهول سړې مستحق کيداې نشي.

تشريح: اقرار سره متعلق جهالت د دريو حالو نه خالي نه دې.يا به مقر مجهول وی.يا مقر له، او يا مقر به.نود مقربه جهالت د اقرار په صحت کي هيڅ مضر نه دې.څکه چې کله کله سړي باندې حق مجهول هم لازميږي .مثلاً د يوکس مال ئې هلاك کړو.چه دهغې قيمت معلوم نه دې.يا ئې څوك زخمي کړو.او ددغه زخم جرمانه معلومه نه ده.يا په يوکس باندې د معاملاتو په حساب کي څه پاته دی.چه هغه ده ته معلوم نه دی.نو لکه څکه چې دلته حق مجهول لازم دې.دغه ډول اقرار کي هم حق مجهول جائز دې.او که مقرله مجهول وی.نودا د اقرار صحت لپاره مانع دې.څکه چې مجهول او نامعلوم سړې مستحق کيداې نشي.

[1]شيخ الاسلام مبسوط کي ، او امام ناطفي په واقعات کي ذکرکړی دی.چه ددې مانع کيدل هغه وخت دی.کله چې جهالت فاحشه وی. ﴿بان قال هذا العبد لواحد من الناس﴾ که جهالت فاحشه نه وی.نو مانع نه دې. ﴿بان قال هذا العبد لأحد هذين الرجلين﴾

[2]شمس الائمه سرخسي رحمه الله فرمائي.چه اقرار به په دې صورت کي هم صحيح نه وی.څکه د اقرار فائده هم دا وه.چه مقر په بيان باندې مجبوره کړې شي.او مجبوره کول د حق والا په وجه کولې شي.او هغه مجهول دې.خو په کافي کي ئې هم دې ته اصح وئيلې دی.چه په مذکوره صورت کي به اقرار صحيح وی.پاتې شو مقر مجهول کيدل، ﴿بان يقول لك على أحد ألف درهم﴾ څکه چې په دې صورت کي مقضي عليه مجهول ده.

## د مجهول شيز اقرار كولو حكم

((وَيُقَالُ لَهُ: او ده ته به ونيلې شي. بَيِّنِ الْمَجْهُولَ) چي مجهول بيان كړه. لِأَنَّ التَّجْهِيلَ مِنْ جِهَتِهِ څكه چي مجهول ساتل ده د اړخه دي. فَصَارَ نو داسي شوه. كَمَا إِذَا أَعْتَقَ أَحَدَ عَبْدَيْهِ لكه چي خپلو دوو (دوه) غلامانو كي ني يو آزاد كړو. (فَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ كه هغه ني بيان نكړي. أَجْبَرَهُ الْقَاضِي عَلَى الْبَيَانِ) نو قاضي به دي په بيانولو باندي مجبوره وي. لِأَنَّهُ لَزِمَهُ الْخُرُوجُ عَمَّا لَزِمَهُ بِصَحِيحِ إِقْرَارِهِ څكه چي دده د صحيح اقرار په وجه كوم شيز په ده باندي لازم شو. د هغي نه وتل هم لازم شو. وَذَلِكَ بِالْبَيَانِ اودا به په بيانولو سره كيږي.

**تشريح:** كه مقر د يو مجهول شيز اقرار اوكړي، نو صحيح به وي. او هغه ته به ونيلې شي. چه دا مجهول بيان كړه. څكه چي د جهالت اجمال هم دده د اړخه واقع شوي دي. نو بيان به هم دده په ذمه وي. لكه مثلاً يو كس د خپلو دوو (دوه) غلامانو په نسبت اووانې. چه په دوی كي يو آزاد دي. نو هم ددي يو تعيين دده په ذمه دي. اوس كه هغه د بيانولو نه منع كيږي. نو قاضي به هغه په بيانولو باندي مجبوره كوي. څكه چي دده په صحيح اقرار سره چي كوم شيز په ده باندي لازم شوي دي. ددي ذمه دارئ نه بهر كيدل هم په ده باندي لازم دي. او ددي صورت هم دا دي. چه دا بيان كړي. دا مسئله اجماعي ده.

((فَإِنْ قَالَ: نو كه ده اوونيل. لِفُلَانٍ عَلَيَّ شَيْءٌ لَزِمَهُ چي ما باندي د فلاني څه شيز لازم دي. أَنْ يُبَيِّنَ مَالَهُ قِيمَةٌ نو ده له به داسي شيز بيانول لازم وي. چه د هغي څه قيمت وي. لِأَنَّهُ أَخْبَرَ عَنِ الْوُجُوبِ فِي ذِمَّتِهِ، څكه چي ده پخپله ذمه باندي د واجبولو خبر وركړي دي. وَمَا لَا قِيمَةَ لَهُ اود كوم شيز چي څه قيمت نه وي. لَا يَجِبُ فِيهَا)، هغه په ذمه باندي نه واجبيږي. فَإِذَا بَيَّنَ غَيْرَ ذَلِكَ يَكُونُ رُجُوعًا. قَالَ (وَالْقَوْلُ قَوْلُهُ مَعَ يَمِينِهِ إِنِ ادَّعَى الْمُقَرُّ لَهُ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ) لِأَنَّهُ هُوَ الْمُنْكِرُ فِيهِ (وَكَذَا إِذَا قَالَ لِفُلَانٍ عَلَيَّ حَقٌّ) لِمَا بَيَّنَّا، وَكَذَا لَوْ قَالَ: غَصَبْتُ مِنْهُ شَيْئًا وَيَجِبُ أَنْ يُبَيِّنَ مَا هُوَ مَالٌ يَجْرِي فِيهِ التَّمَانُعُ تَعْوِيلًا عَلَى الْعَادَةِ.

**تشريح:** په،، ((لفلان علي شئ)) ونيلو كي به بيان په داسي شيز سره ضروري وي. كوم چي قيمتي وي. اگرچه كمتر وي. څكه چي لفظ د،، علي،، ايجاب او الزام لپاره وي. اود كوم شيز چي څه قيمت نه وي. هغه د سړي په ذمه نه واجبيږي. نو كه ده دا بيان كړل چه د غنمو يوه دانه ده. نو صحيح به نه وي. څكه چي دا خو د اقرار نه رجوع كول دي. محيط كي دي. كه مقر دا اووانې، چي ما په حق سره د حق اسلام اراده كړي ده. نو دده تصديق به نشي كولې. (كله ني چي مفصولاً ونيلې وي. كه موصولا ني ونيلې وي. نو تصديق به كولې شي. د آئمه ثلاثه په نيز به دواړو صورتونو كي تصديق نشي كولې). او كه مړ، يا خنزير، يا شراب ني مراد واخستل. نود ماوراء النهر د مشانخو په نيز به تصديق نه كيږي. څكه چي ددي څيزونو هيڅ قيمت نشته. په يوه وجه كي امام مالك او امام شافعي رحمهما الله هم ددي قائل دي. اود عراق د مشانخو په نيز به تصديق كولې شي. وكه دا ني اوونيل. چه يوه پيسه مراد ده. نو تصديق به كولې شي.

((وَلَوْ قَالَ: كه وي ونيل. لِفُلَانٍ عَلَيَّ مَالٌ چي د فلاني په ما باندي مال دي. فَالْمَرْجِعُ إِلَيْهِ فِي بَيَانِهِ نو ددي په بيان كي به هغه اړخ ته رجوع كولې شي. لِأَنَّهُ الْمُجْمِلُ څكه چي مجمل ساتونكي هم هغه دي. وَيُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي الْقَلِيلِ وَالْكَثِيرِ) او په كم او زيات كي به دده قول قبلولې شي. لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مَالٌ څكه چي دا واړه مال دي. فَإِنَّهُ اسْمٌ لِمَا يُتَمَوَّلُ بِهِ څكه چي مال د هغه نوم دي. چه هغې سره مالداري حاصلولې شي. ((إِلَّا أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِي أَقَلَّ مِنْ دِرْهَمٍ) خود يو درهم څخه به په كم كي تصديق نشي كولې. لِأَنَّهُ لَا يُعَدُّ مَالًا عُرْفًا څكه چي عرف كي دا مال نه شمارلي كيږي.

**تشريح:** په دي اقرار كي چي مقر كم او زيات څه هم بيان كړي. معتبر به وي. څكه چي دا كه كم وي. اوكه زيات وي. بهرحال مال دي. څكه چي مال هم هغه ته واني. چه دي سره انسان مالداري حاصله كړي. بيا شيخ الاسلام



خواهرزاده پخپل مبسوط كي ذكر كړي دي. چه په مقتضاء د قياس، يو درهم نه كم بيان هم قبلول پكار دي. څكه چي دا هم مال دي. خو استحساناً به تصديق نشي كولې. څكه چي عرف كي دي ته مال نه واني. اسبيجابي په شرح كافي كي د ﴿ولو قال له علي مال كان القول قوله فيه و درهم مال﴾ ذكر كاوه نه روسته ليكلي دي. چه ددي نه دا وهم كيږي. چه د يو درهم نه په كم كي به دده قول نه قبليږي. او بعضو ونيلي دي. چه قبلول پكار دي. څكه چي دمال اطلاق په نصف او سدس درهم باندي هم كيږي. خو صحيح داده. چه قبول نكړې شي. څكه چي كوم مال تحت الالزام داخليږي. هغه په حكم د عادت يو درهم نه كم نه وي. شيخ ناطفي په اجناس كي د نوادر هشام نه، د امام محمد رحمه الله د قول ﴿لو قال لفلان علي مال له أن يقر بسدرهم﴾ نقل كاوه نه روسته د شيخ هاروني قول ذكر كړې دي. چه د امام ابوحنيفه او امام زفر رحمهما الله په قول كي د لس كره دراهمو نه كم كي به تصديق نه كيږي. او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چه په دري دراهمو كي به تصديق كيږي. ددي نه په كم كي به نه كيږي.

((وَلَوْ قَالَ: او كه وي ونيل. مَالٌ عَظِيمٌ چي مال عظيم دي. لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ) نود دوو (دوه) سوه درهمو څخه به په كم كي تصديق نشي كولې. لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِمَالٍ مَوْصُوفٍ څكه چي ده د مال موصوف اقرار كړي دي. فَلَا يَجُوزُ إِلْغَاءُ الْوَصْفِ نود وصف لغوه كول به جائز نه وي. وَالنِّصَابُ عَظِيمٌ او نصاب مال عظيم دي. حَتَّى اعْتُبِرَ صَاحِبُهُ غَنِيًّا بِهِ، تردي چي ددي مالك توانگر شمارلي كيږي. وَالْغَنِيُّ عَظِيمٌ عِنْدَ النَّاسِ. او توانگر د خلكو په نيز عظيم وي. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دي. أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ چي د لس درهمو څخه به كم كي تصديق نه كيږي. وَهِيَ نِصَابُ السَّرِقَةِ لِأَنَّهُ عَظِيمٌ حَيْثُ تُقْطَعُ بِهِ الْيَدُ الْمُحْتَرَمَةُ، اودا په دي حيثيت سره عظيم دي. چه ددي په غلا كاوه سره محترم لاس كټ كولې شي. وَعَنْهُ مِثْلُ جَوَابِ الْكِتَابِ، او ددوی نه دوهم روايت كوم چي د كتاب د ځواب پشان دي. وَهَذَا إِذَا قَالَ مِنَ الدَّرَاهِمِ، اودا هغه وخت دي. كله چي ده من الدراهم ونيلي نوی. أَمَّا إِذَا قَالَ مِنَ الدَّنَانِيرِ او كه من الدنانير ني ونيلي وي. فَالتَّقْدِيرُ فِيهَا بِالْعِشْرِينَ نو په دي كي به اندازه د شلو نه كيږي. وَفِي الْإِبِلِ بِخَمْسٍ وَعِشْرِينَ او من الابل ونيلو كي د پنځه ويشتو نه. لِأَنَّهُ أَدْنَى نِصَابٍ څكه چي دا كمتر حساب دي. يَجِبُ فِيهِ مِنْ جِنْسِهِ چي په دي كي هم ددي جنس حيوان (څاروي) په زكاة كي واجبيږي. وَفِي غَيْرِ مَالِ الزَّكَاةِ بِقِيمَةِ النِّصَابِ اود زكاة د مال نه علاوه كي به د نصاب قيمت معتبر وي.

**تشريح:** د مال عظيم په اقرار كي به د زكاة د نصاب يعني د دوو (دوه) سوه درهمو نه په كم كي به تصديق نه كيږي. د امام شافعي رحمه الله په نيز دا هم د ﴿له علي مال﴾ پشان دي. مونږ وايو. چه ده مال د عظيم په صفت سره موصوف كړې دي. نودا وصف نشي لغو كيدلې. بيا په شريعت كي د زكاة نصاب مال عظيم دي. چه شريعت نصاب والا توانگر شمار كړې دي. او په عرف كي هم دي توانگر گڼرلې شي. نو ددي اعتبار به كولې شي. هم دا اصح ده. (اختيار)

❀ بيا دا د صاحبينو رحمهما الله قول دي. په دي اړه كي امام محمد رحمه الله په مبسوط كي د امام ابوحنيفه رحمه الله قول نه دي ذكر كړې. په دي وجه د مشانخو روايات مختلف شوي دي. په يو روايت كي دي. چه د غلا نصاب، يعني د لس درهمو څخه به په كم كي تصديق نه كيږي. څكه چي دا هم مال عظيم دي. چه ددي په غلا كولو كي محترم اندام (لاس) كټ كولې شي. او دوهم روايت هم هغه دي. كوم چي په كتاب كي د صاحبينو رحمهما الله قول ذكر كړې شو.

## د اموال عظام اقرار سره ددي اندازه او نصاب

((وَلَوْ قَالَ: أَمْوَالٌ عِظَامٌ او كه (په اقرار كي) اموال عظام ني اوونيل. فَالتَّقْدِيرُ بِثَلَاثَةِ نُصُبٍ مِنْ أَيِّ فَنٍّ سَمَّاهُ) نو ده چي د كوم جنس اموال بيان كړي دي. د هغې د دري نصابونو څخه به اندازه كيږي. اعْتِبَارًا لِأَدْنَى الْجَمْعِ د ادنى

جمع اعتبار کاوه سره. (وَلَوْقَالَ: او که وې وئيل. دَرَاهِمُ كَثِيرَةٌ چې دراهم کثيره دي. لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ) نود لسو نه په کم کې به تصديق نه کيږي. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی. (وَعِنْدَهُمَا لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ مِائَتَيْنِ) د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د دوې (دوه) سوه نه په کم کې تصديق نه کيږي. لِأَنَّ صَاحِبَ النِّصَابِ مُكْثِرٌ ځکه چې نصاب والا د ډير مال والا دې. حَتَّى وَجَبَ عَلَيْهِ مُوَاسَاةُ غَيْرِهِ، تر دې چې په ده باندې د نورو خلګو مواسات (غمخواري او مدد) لازم دې. بِخِلَافِ مَا دُونَهُ. په خلاف ددې چې کم وي.

تشريح: په دې اقرار کې چې ده د کوم جنس اموال (درهم، دينار، اوبن وغيره) ذکرکړې دی. هم ددغه جنس درې نصابه بيانولو سره به اندازه کيږي. په دې لحاظ سره چې ادنی د جمع درې دی. اود دراهم کثيره په اقرار کې به د امام صاحب رحمه الله په نيز لس دراهم لازم وي. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به د زکاة د نصاب نه په کم کې تصديق نه کيږي. ځکه چې د شريعت په نظر کې (مالدار) نصاب والا دې. امام صاحب رحمه الله فرمائي. چه د لس عدد د جمع کثرت دمصداق ادنی مرتبه ده. او دجمع قلت منتهاء ده. نود لفظ په اعتبار سره هم دا اکثر شو. «لِأَنَّهُ يُقَالُ عشرة دراهم ثم يقال أحد عشر درهماً» يعنی کله چې عدد د لس نه زيات شي. نو د هغې مميز مفرد راځي. جمع نه راځي.

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ الْعَشَرَةَ أَقْصَى مَا يَنْتَهِي إِلَيْهِ اسْمُ الْجَمْعِ، چې د لسو شمير انتهائي دې په کوم باندې چې اسم جنس منتهی کيږي. يُقَالُ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ وائي چه ،،عشرة دراهم،، ثُمَّ يُقَالُ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا بيا وائي ،،احد عشر درهماً،، فَيَكُونُ هُوَ الْأَكْثَرَ مِنْ حَيْثُ اللَّفْظِ نود لفظ په حيثيت سره لس زيات شو. فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِ نو هم دې اړخ ته به راګرځولې شي.

تشريح: په دې دا اعتراض کيږي. چه د لس عدد انتهاء جمع کيدل هغه وخت دی. کله چې اسم جمع عدد سره ملاؤ شوې وي. ګنې د انفراد په حالت کې دجمع کثرت نه مراد د لس نه زيات، ،الی ما لا نهاية،، کيداې شي. او دلته مسئله د انفراد د حالت ده. په دې وجه صدرالشريعة په شرح وقايه کې د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول تعليل «لان جمع الكثرة أقله عشرة» په اړه کې وئيلی دی. چه دا په دوې (دوه) وجو سره صحيح نه دې. ① اول په دې وجه چې د جمع کثرت اقل عدد يوولس دې. لس نه دې. لکه چې محقق رضی بيان کړی دی. چه مطلق جمع په دوې (دوه) طريقو ده. جمع کثرت او جمع قلت. اود جمع قلت نه مراد د دريو نه لس پورې دې. چه په دې کې دواړه حدونه داخل دی. اود کثير نه مراد ما فوق العشره دې. ② دوهم په دې وجه که د امام د قول علت د جمع کثرت اقل کيدل لس وي. نو لازميږي چې د کثرت وصف ذکر کاوه نه بغير د ،،له علی دراهم،، وئيلو په صورت کې هم ستاسو په نيز د لسو نه په کم کې تصديق اونکړې شي. حالانکه په دې صورت کې بالاتفاق د دريو مراد آخستلو کې تصديق کيږي. (لکه چې روسته به راشی). نو غوره تعليل د صاحب غايه دې. چه د مقر په کلام کې کثرت په حيثيت د حکم نصاً ذکر نه دې. بلکه ددې ثبوت په اړتيا دې. هغه داچه د کثرت صفت لغوه نشی. ځکه چې د عرف او حقيقت په اعتبار سره دې باندې عمل مشکل دې. اوکوم شئ چې د غير د صحت په مقتضاء سره ثابت وي. هغه دومره کمتر ثابتيږي. چه دې سره د غير صحت اوشی. او په حيثيت د حکم د جمع ادنی مرتبه چې په دې سره کثرت ثابتيږي. هغه لس دې. ځکه چې د شريعت په رو سره قطعيت او تيقن زيات مال سره تړلې دې. کم سره نه دې.

(وَلَوْقَالَ دَرَاهِمُ که وې وئيل چې دراهم دی. فَهِيَ ثَلَاثَةٌ) نودا به درې وی. لِأَنَّهُ أَقَلُّ الْجَمْعِ الصَّحِيحِ ځکه چې دا د

[1] القول الراجح هو قول أبی حنيفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار (٥٠١\١٤) والخخانية (٢٠٤\١٣) وملتقى الأبحر (٣٩٨\١٣) والعناية (٣٠٨\١٧) ومجمع الأنهر (٢٩١\١٣) والدرالمنتقى (٢٩١\١٢) نقلاً عن القول الراجح (١٩٥\١٢)



جمع صحيح کمتر دې. (إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ أَكْثَرَ مِنْهَا) خودا که دې ددې نه زيات بيان کړی. لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُ ځکه چې لفظ ددې احتمال هم لري. وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَزْنِ الْمُعْتَادِ او درهم وزن معتاد (عام مستعمل وزن) اړخ ته ګرځولې شوې دې.

تشريح: که مقر اووئيل. چه ما باندې د فلانی دراهم دی. نودا به په دريو دراهمو باندې واقع کيږي. ځکه چې د جمع صحيح کمتر درې دی.

سوال: په «لانه اقل الجمع الصحيح.....» کې لفظ صحيح که د جمع صفت وی. لکه څنګه چې د ښکاره ترکيب نه هم دا معلوميږي. نو لفظ دراهم جمع صحيح نه ده. بلکه جمع مکسر ده. نو دليل د مدعی مطابق نشو. اوکه دلفظ اقل صفت وی. لکه چې د صاحب کافی قول «لانه ادنی الجمع المتفق عليه» اود صاحب عنايه قول «لانها اقل الجمع الصحيح الذی لا خلاف فيه بخلاف المثنی» چې دې اړخ ته اشاره کوی. نود دريو اقل جمع کيدل جمع قلت کې دی. جمع کثرت کې نه دی. لکه څنګه چې د رضی بيان تير شو چه اقل د جمع کثرت يوولس دی. او لفظ ،،دراهم،، جمع کثرت دې. جمع قلت نه دې. ځکه چې د نحو د کتابونو نه دا خبره ثابته ده. چه د جمع مکسر واړه مثالونه د ټولو په نيز جمع کثرت دی. سوا د څلورو مثالونو نه، چې هغه مشهور دی. يعنی «أفعل، أفعال، أفعلة، فعلة» لکه د ،،أنهر،، نه ،،أقمر،، د ،،طفل،، نه ،،أطفال،، د ،،رغيف،، نه ،،أرغفة،، د ،،فتى،، نه ،،فتية،، (فراء د فعلة، په مثل د اكلة استثناء هم کړې ده. او په نقل د تبريزی کې افعلا په مثل د اصدقاء هم استثناء ده) او لفظ دراهم ددې مستثنياتو څخه دې. نودا جمع کثرت شوه. ،،فلم يتم المطلوب،،

ځواب: ددې ① ځواب دادې. چه محقق رضی تصريح کړې ده. چه هر رباعی الاصل جمع تکسير، په قلت او کثرت کې مشترك ده. يعنی د دواړو فائده ورکوی. او ښکاره ده. چه لفظ دراهم ددې قبيلې څخه دې. نو هرکله چې دا قلت او کثرت دواړو کې مشترك وی. نو ددې اقل متيقن درې شو. ،،فتم المطلوب،، ② دوهم ځواب دادې. په تلويح کې دی. چه عالمانو د جمع قلت او جمع کثرت په منځ کې توپير نه دې کړې. نو دا ښکاره په دې دلالت کوی. چه په دې کې کوم توپير دې. هغه صرف د ژباتوالی دارخه دې. يعنی جمع قلت د لسو يا ددې نه کم سره خاص دې. او جمع کثرت ددې سره خاص نه ده. «لانه مختص بما فوق العشرة» د استعمال زيات موافق هم دادې. اګرچه ډيرو ثقه عالمانو ددې خلاف هم وضاحت کړې دې. نو ممکن ده. چه د دليل مذکور مدار هم په دې وی. کوم چې اوفق بالاستعمالات دې. (نتائج)

### • په مبهم عدد سره د اقرار اندازه

(وَلَوْقَالَ: که وې وئيل. كَذَا كَذَا دِرْهَمًا چې دومره دومره دراهم دی. لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا) نود يوولس درهمو نه په کم کې به تصديق نه کيږي. لِأَنَّهُ ذَكَرَ عَدَدَيْنِ مُبْهَمَيْنِ ځکه چې ده دوې (دوه) مبهم عددونه ذکر کړی دی. لَيْسَ بَيْنَهُمَا حَرْفُ الْعَطْفِ چې دې کې حرف عطف نشته. وَأَقَلُّ ذٰلِكَ مِنَ الْمُفَسَّرِ أَحَدَ عَشَرَ او په داسې عدد کې کمتر عدد يوولس دې.

تشريح: که مقر ،، علی كذا كذا درهماً،، اووئيل. نو په ده به يوولس درهمه لازم وی. او که حرف عطف سره ئې ،،كذا وكذا،، اوئيل. نو يوويشت درهم به لازم وی. ځکه چې ړومبی صورت کې ده دوې (دوه) عدد مبهم د حرف عطف نه بغير ذکر کړی دی. او ددې پشان د اقل عدد مفسر ،،احدعشر،، دې. او که اکثر تسعة عشر (ئې اووئيل)، نو اقل متيقن به لازم وی. او په دوهم صورت کې حرف عطف سره ذکر کړی دی. چه ددې ادنی مثال احد و عشرون دې. نو هر وجه به ددې په مثال باندې محمول کولې شی.

(وَلَوْقَالَ: که وې وئيل، كَذَا وَكَذَا دِرْهَمًا چې دومره او دومره دی. لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ أَحَدٍ وَعِشْرِينَ) نو د يو ويشتو نه کم کې به تصديق نه کيږي. لِأَنَّهُ ذَكَرَ عَدَدَيْنِ مُبْهَمَيْنِ ځکه چې ده داسې دوې (دوه) مبهم عددونه ذکرکړی دی. بَيْنَهُمَا حَرْفُ الْعَطْفِ، چې دې کې حرف عطف دې. وَأَقَلُّ ذٰلِكَ مِنَ الْمُفَسَّرِ أَحَدٌ وَعِشْرُونَ اود مفسر نه

کمتر عدد یوویشت دي. فَيُحْمَلُ كُلُّ وَجْهٍ عَلَى نَظِيرِهِ نو هروجه به ددې په مثال باندې محمول کولې شی. (وَلَوْ قَالَ که وې ونیل ,كَذَا دِرْهَمًا چې دومره درهم دی. فَهُوَ دِرْهَمٌ) نو هغه یو درهم دې. لِأَنَّهُ تَفْسِيرٌ لِلْمُبْهَمِ ځکه چې دا د مبهم تفسیر دې.

**تشریح:** اوکه وې ونیل. «له علی کذا درهما» نو د معتمد قول مطابق به صرف یو درهم لازم وی. ځکه چې لفظ درهماً د شئ مبهم تفسیر دې. او هغه کذا دې. ځکه چې دا د عدد مبهم نه کنایه دې. او ددې اقل متیقن یو دې. نو هم په دې به محصول کولې شی. اما شرف الدین ابوحفص عمروبن محمد عمر انصاری عقیلی په کتاب المنهاج کې ونیلی دی. چه په دې صورت کې هغه څه هم بیان کړی. هم هغه به لازم وی.

۱ رومبئ تنبیه: د «له علی کذا درهما» والا مسئله په معتبرو کتابونو (جامع صغیر، ذخیره، محیط، تتمه، او فتاوی قاضی خان وغیره کې د هغې خلاف ذکر دی. کوم چې علامه مرغینانی رحمه الله ذکر کړی دی. لکه چې جامع صغیر کې دی. «إذا قال لفلان علیّ كذا درهما فعليه درهمان لأن هذا أقل ما يعد لأن الواحد لا يعد حتى يكون معه شئ آخر» دغه ډول په فتاوی قاضی خان کې دی. «لو قال لفلان عليّ كذا ديناراً فعليه ديناران لأن كذا كناية عن العدد و أقل العدد إثنان» یعنی په قول مذکور کې به دوې (دوه) درهمه یا دوې (دوه) دیناره لازم وی. ځکه چې واحد عدد نه شمارلې کیږی. تردې چې ددې سره دوهم شئ وی.

۱ اعتراض: په دې باندې صاحب د نتائج دا اعتراض کړې دې چه د واحد عدد نه کیدل، د حساب د اصطلاح په لحاظ سره دې. د وضع او لغت په لحاظ سره واحد یقیناً عدد دې. دلته کې د لغت او نحو امامانو د عدد اصول دولس کلمې ګرځولې دی. یعنی د واحد نه عشره پورې، او لفظ د مائة او الف، په صحاح کې دی. «الأحد بمعنى الواحد وهو أول العدد» رضی کې دی. «لا خلاف عند النحاة فى أن لفظ واحد و إثنان من أسماء العدد وعند الحساب ليس الواحد من العدد لأن العدد عندهم هو الزائد على، و منع بعضهم أن يكون الإثنان من العدد» او ښکاره ده. چه د لفظ کذا د عدد نه کنایه کیدل، د اهل حساب په اصطلاح باندې مبنی نه ده. بلکه دا خو په اصل وضع او لغت باندې جاری دې. نود اهل حساب په نیز د اثنین اقل عدد کیدل ددې تقاضا نه کوی. چه په مسئله مذکوره کې مقر باندې دوې (دوه) درهمه واجب وی.

② دویمه تنبیه: صاحب د غایه رحمه الله فرمائیلی دی. چه په مسئله مذکوره کې یوولس درهمه واجبول پکار دی. ځکه چې دا رومبې عدد دې. چه ددې ممیز منصوب واقع کیږی. نو په یو درهم کې دده تصدیق کول پکار نه دې. اود قیاس تقاضا داده. کوم چې په مختصرالاسرار کې مذکور ده. چه ,,له علی کذا درهماً،، کې به شل درهمه لازم وی (ابن عبد الحکم مالکی هم ددې قائل دې) وجه داده. چه ده یوه جمله ذکر کړې ده. چه ددې تفسیر ئې په لفظ درهم منصوب سره کړې دې. اودا د ,, عشرون،، نه د ,, تسعون،، پورې وی. نو اقل متیقن یعنی عشرون به واجب وی.

۱ تاج الشریعه په ځواب کې ونیلی دی. چه اصل د ذمې براءت دې. نو ادنی ثابت شو. ځکه چې هم دا یقینی دې. صاحب د نتائج فرمائی. چه دا ځواب نامکمل دې. ځکه چې د ذمې براءت اصل کیدل ددې تقاضا کوی. چه د مقر الفاظ د کوم احتمال لری. چه د هغې ادنی ثابت شی. دا نه چې علی الاطلاق ادنی ثابت شی. نو حق ځواب دادې. چه د مقر قول مذکور د ممیز منصوب کیدلو کې اګرچه د احدعشر مثال دې. خو په دې معنی چې احد عشر مرکب عدد دې. او لفظ کذا مرکب نه دې. په دې اعتبار سره دا د نفس احد عشر مثال نه دې.

③ دریمه تنبیه: صاحب د معراج فرمائیلی دی. چه ابن قدامه په المغنی کې او صاحب د ,,حلیه،، چې د امام محمد رحمه الله نه دا نقل کړی دی. چه «إذا قال كذا درهماً لزمه عشرون عنده لأنه أقل عدد يفسره الواحد المنصوب» دا د هدایه، ذخیره، او تتمه، او خانیه خلاف دې. او موږ دا خبره د خپلو اصحابو په مشهورو کتابونو کې او نه موندله. صاحب د نتائج فرمائی. چه شاید (کیدای شی) موصوف هغه نه وی کتلې. کوم چې په مختصر الاسرار او شرح مختار کې مذکور دی. یا ئې دا په کتب مشهوره کې نه دی شمار کړی.



(وَلَوْ قَالَ كَذَا كَذَا بِغَيْرِ وَاوٍ) وکه لفظ د کذا ئې درې خل اوونیل. د واؤ نه بغیر، (فَأَحَدَ عَشَرَ) نو یوولس به وی. لِأَنَّهُ لَا نَظِيرَ لَهُ سِوَاهُ ځکه چې ددې نه سوا ددې بل څه مثال نشته. (وَإِنْ ثَلَّثَ بِالْوَاوِ) و که درې خل ئې واؤ سره اوونیل. (فَمِائَةٌ وَأَحَدٌ وَعِشْرُونَ)، نو یو سل یوویشت به وی. (وَإِنْ رَبَّعَ) و که څلور خل ئې اوونیل. (يُزَادُ عَلَيْهَا أَلْفٌ) نو په یو سل یوویشتو به د یو زر اضافه کولې شی. لِأَنَّ ذَلِكَ نَظِيرُهُ ځکه چې ددې مثال هم دا عدد دې.

**تشریح:** که مقر لفظ د کذا درې خله د حرف عطف نه بغیر ذکر کړو. نو هم هغه یوولس درهمه به لازم وی. ځکه چې ددې مبهم عدد پشان هیڅ مفسر نشته. نو دریم لفظ د کذا درې خله د حرف عطف سره ذکر کاوه سره داسې اوونیلې. چه، ,له علی کذا وکذاوکذا درهماً،، نو یوسل او یوویشت درهم به لازم وی. ځکه چې واؤ سره د دریو د عدد اقل تعبیر ,, مائة و احد و عشرون،، دې. او پنځه خله کې یوولس زره یوسل او یوویشت، او په شپږ خله کې یو لاکھ یوولس زره یوسل او یوویشت، او اووه خله کې یوولس لاکه یوولس زره یوسل او یوویشت درهم لازم وی. ,, و هذا یعتبر نظیره،،

### ,,په ما،, یا ,,زما طرف ته،, الفاظو سره د اقرار حکم

قَالَ: (وَإِنْ قَالَ: که وې ونیل. لَهُ عَلَيَّ أَوْ قِبَلِي چې د فلانی ,, په ما،، یا ,, زما په طرف،، دی. فَقَدْ أَقَرَّ بِالدَّيْنِ) نو ده د پور اقرار اوکړو. لِأَنَّ "عَلَيَّ" صِيغَةُ إِيجَابٍ، ځکه چې کلمه د ,,علی ،، صیغه د ایجاب ده. وَقِبَلِي يُنْبِئُ عَنِ الضَّمَانِ او لفظ د قبلی د ضمان خبر ورکوی. عَلَى مَا مَرَّ فِي الْكَفَالَةِ. لکه څنګه چې کفاله کې تیر شوی دی.

**تشریح:** که مقر ,, له علی کذا یا له قبلی کذا،، اوونیل. نودا به د پور اقرار وی. په رومبی صورت کې ځکه چې دده په قول کې دین اګرچه صراحةً مذکور نه دې. البته کلمه د ,, علی ،، ایجاب کې استعمالیږی. قال الله تعالی ﴿وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا﴾ اود ایجاب محل ذمه ده. او ثابت فی الذمه دین وی. عین نه وی. او په دوهم صورت کې ځکه چې لفظ د ,,قبلی ،، ضامن کیدل ښائی. ځکه چې دا د لزوم نه عبارت دې. په دې وجه د ضمانت کاغذ ته قباله، او کفیل ته قبیل وائی.

(وَلَوْ قَالَ الْمُقِرُّ وکه مقر ونیلی وی. هُوَ وَدِيعَةٌ چې هغه ودیعت دې. وَوَصَلَ صُدِّقَ) اودا ئې متصل اوونیل. لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُ مَجَازًا نو تصدیق به کولې شی. حَيْثُ يَكُونُ الْمَضْمُونُ عَلَيْهِ حِفْظُهُ ځکه چې لفظ مجازاً ددې احتمال لری. چه حفظ او ودیعت ضامن وی. وَالْمَالُ مَحَلُّهُ او مال د حفاظت شئ دې. فَيُصَدَّقُ مَوْصُولًا لَا مَفْصُولًا. نو موصولاً تصدیق به کولې شی. مفصولاً به نشی کولې.

**تشریح:** که مقر د ,,له،، ,,یا،، ,,علی ،، یا ,,قبلی ،، ونیلو نه روسته متصل دا اوونیل. ,,هو ودیعة،، نو دده تصدیق به کولې شی. ځکه چې د کلام پیل د مجاز په حیثیت سره ددې احتمال لری. په دې معنی چې دې د ساتنه او ودیعت ضامن وی. او مال د حفاظت شئ دې. نو ده محل یعنی مال او دولت ونیلو سره د حال یعنی د ساتنه اراده کړې ده. چه دا مجازاً جائز ده. ,,کما یقال نهرجار،،

قَالَ رَحِمَهُ اللَّهُ: علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. وَفِي نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ چې د قدوری په بعضو نسخو کې دی. فِي قَوْلِهِ قِبَلِي إِنَّهُ إِقْرَارٌ بِالْأَمَانَةِ چه ,,قبلی ،، ونیلو کې د امانت اقرار دې. لِأَنَّ اللَّفْظَ يَنْتَظِمُهُمَا ځکه چې لفظ دواړو ته ګډ دې. حَتَّى صَارَ قَوْلُهُ: تردې چې دده دا ونیل لَا حَقَّ لِي قِبَلَ فُلَانٍ چې د فلانی په اړخ زما هیڅ حق نشته. إِبْرَاءً عَنِ الدَّيْنِ وَالْأَمَانَةِ جَمِيعًا، د پور او امانت دواړو نه بری کول دی. وَالْأَمَانَةُ أَقَلُّهُمَا او په دې کې امانت کمتر دې. وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ خو رومبې قول اصح دې. (وَلَوْ قَالَ که وې ونیل. عِنْدِي چې زما سره، أَوْ مَعِي یا زما په لاس، أَوْ فِي بَيْتِي یا زما کور، أَوْ فِي كِيسِي یا زما تهیلئ، أَوْ فِي صُنْدُوقِي یا زما صندخ کې دې. فَهُوَ إِقْرَارٌ بِأَمَانَةٍ

فِي يَدِهٖ) نودا دده په قبضه کې د امانت کیدلو اقرار دی. لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ إِقْرَارٌ بِكَوْنِ الشَّيْءِ فِي يَدِهٖ ځکه چې د هر لفظ نه د شی خپله قبضه کې د کیدلو اقرار دی. وَذٰلِكَ يَتَنَوَّعُ إِلٰى مَضْمُونٍ وَأَمَانَةٍ او قبضه په دوی (دوه) قسمه وی مضمون او امانت. فَيَثْبُتُ أَقَلُّهُمَا نو په دې کې به کمتر ثابتیږی.

**تشریح:** یعنی د مختصر القدوری په بعضو نسخو کې دی چه،، قبلی ،، ونیل د امانت اقرار دی. ځکه چې لفظ د،، قبل،، امانت او پور دواړو ته کړ دی. تردې که څوك دا اووائی چه،، لاحق لی قبل فلان،، نودا به د پور او امانت دواړو نه بری کول وی. چه ددې صراحت په مبسوط کې موجود دی. نو هرکله چې په،، قبلی ،، ونیلو کې د پور او امانت دواړو احتمال دی. او په دې کې امانت کمتر دی. نو اقرار به هم په دې باندې محمول کولې شی. خو اصح داده. چه مذکوره قول د پور اقرار دی.

### د مقرله د سوال په جواب کښې د مقر بعضو الفاظو سره د اقرار حکم

(وَلَوْقَالَ لَهُ رَجُلٌ: یوکس ده ته اوونیل. لِي عَلَيْكَ أَلْفٌ چې زما په تا باندې زر دی. فَقَالَ ده ورته اوونیل. اِتَّزِنْهَا دا اوتله. أَوِانْتَقِدْهَا یا اوشماره. أَوْأَجِّلْنِي بِهَا یا ددې مائة مهلت راکړه. أَوْقَدْقَضَيْتُكَهَا یا ما تاته درکړی دی. فَهُوَإِقْرَارٌ) نودا اقرار دی. لِأَنَّ الْهَاءَ فِي الْأَوَّلِ وَالثَّانِي كِنَايَةٌ عَنِ الْمَذْكُورِ فِي الدَّعْوٰى، ځکه چې هاء ضمیر په اول او دوهم کې هم د هغې نه کنایه دی. کوم چې دعوه کې ذکر دی. فَكَأَنَّهُ قَالَ: نو ګویا ده دا اوونیل. اِتَّزِنِ الْأَلْفَ الَّتِي لَكَ عَلَيَّ، چې اوتله هغه زر کوم چې ستا په ما دی. حَتّٰى لَوْلَمْ يَذْكُرْ حَرْفَ الْكِنَايَةِ تردې که هغه کنایه حرف ذکر نکړی. لَايَكُوْنُ إِقْرَارًا نو اقرار به نه وی. لِعَدَمِ انْصِرَافِهٖ إِلَى الْمَذْكُورِ، مذکور اړخ ته د نه منصرف کیدلو په وجه، وَالتَّأْجِيْلُ إِنَّمَا يَكُوْنُ فِي حَقٍّ وَاجِبٍ، او مهلت ورکول په واجب حق کې کیږی. وَالْقَضَاءُ يَتْلُو الْوُجُوْبَ او اداکول د وجوب نه روسته کیږی.

**تشریح:** یو سړی زید ته اوونیل. چه زما په تا باندې یو زر دی. زید په ځواب کې اوونیل. چه دا وزن کړه. یا نې اوشماره. یا ددې مهلت راکړه. یا ما تاته، درکړی دی. یا ما دا په فلانی باندې حواله کړی دی. نو په دې ټولو صورتونو کې د زید د اړخه ددغه سړی لپاره د یو زر اقرار دی. ځکه چه،، اِتَّزِنْهَا ، اِنْتَقِدْهَا،، جملو کې هاء ضمیر هم دې زر اړخ ته راجع دی. نودا دده د کلام ځواب یعنی اثبات شو. انکار نشو. یا بل څه جلا کلام شو. البته که زید د ضمیر نه بغیر داسې اوونیل. چه،، اتزن یا انتقد... إلخ،، نو هیڅ به نه لازمیږی. ځکه چې دا جداګانه کلام دی. دده د کلام ځواب نه دی. امام شافعی او امام محمد رحمهما الله فرمانی. چه په،، اتزن او إنتقد،، کې به اقرار نه کیږی. که په هاء سره وی. او که بغیر د هاء نه وی. د امام مالك رحمه الله بعض اصحاب هم ددې قائل دی. ابن سحنون مالکی رحمه الله فرمانی. چه په دواړو صورتونو کې به اقرار وی. اود امام شافعی رحمه الله د بعضو اصحابو نه زموږ د قول پشان هم نقل دی. پاتې شوه د میعاد مسئله، نو مهلت ورکول په هغه حق کې کیږی. چه واجب وی.

فائده: د مسئلې قاعده کلیه داده. چه کوم کلام د ځواب کیدلو صلاحیت لری. اود کلام د ابتداء کیدلو صلاحیت نه لری. نو هغه ځواب ګرځیدلې شی. او کوم چې د کلام د ابتداء کیدلو صلاحیت لری. اود ځواب کیدلو صلاحیت نه لری. یا د دواړو صلاحیت نه لری. نودا جلا کلام ګرځولې شی.

وَدَعْوَى الْإِبْرَاءِ كَالْقَضَاءِ لِمَا بَيَّنَّا، اود بری کاوه دعوه د مثل ادا کاوه ده. وَكَذَا دَعْوَى الصَّدَقَةِ وَالْهِبَةِ هم دغه ډول د صدقه او تحفه دعوه ده. لِأَنَّ التَّمْلِيْكَ يَقْتَضِي سَابِقَةَ الْوُجُوْبِ، ځکه چې مالك جوړول اول ذمه غواړی. وَكَذَا لَوْقَالَ هم دغه ډول که دا نې اوونیل. أَحَلْتُكَ بِهَا عَلٰى فُلَانٍ چې ما دا په فلانی باندې احاله کړې وو. لِأَنَّهُ تَحْوِيْلُ الدَّيْنِ ځکه چې دا د دین تحویل دی.

**تشریح:** که مقر په قول مذکور کې د بری کاوه دعوه اوکړله. نودا هم داسې ده. لکه د ادا کاوه دعوه کول. یعنی د





واجبولو اقرار به وی. ځکه چې بری کول د ذمې نه روسته کیږی. اوکه ده اوونیل. چه تا ما ته صدقه یا تحفه کړې وو. بیا به هم د واجبیدلو اقرار وی. ځکه چې اول هغه واجب شو. نو بیا هغه قرضدار مالك کړو.

### د مقرله میعادی اقرار، د مقرپه رد کولو سره د في الحال واجبیدلو حکم

قَالَ (وَمَنْ أَقَرَّ بِدَيْنٍ مُؤَجَّلٍ کوم کس چې د مقرر وخته پورې د دین اقرار اوکړو. فَصَدَّقَهُ الْمُقَرُّلَهُ فِي الدَّيْنِ او مقرله دا په دین کې اومنلو. وَكَذَّبَهُ فِي التَّأْجِيْلِ و په مقرره وخت کې نې دروغ کړو. لَزِمَهُ الدَّيْنُ حَالًا) نو په ده به دین فی الحال لازم وی. لِأَنَّهُ أَقَرَّ عَلٰى نَفْسِهٖ بِمَالٍ وَادَّعٰى حَقًّا لِنَفْسِهٖ فِيْهِ ځکه چې ده پخپله د مال په اقرار سره خپل ځان لپاره د حق دعوه کړې ده. فَصَارَ نو داسې شوه. كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِعَبْدٍ فِي يَدِهٖ لکه چې د هغه غلام اقرار نې کړې وی. کوم چې دده په قبضه کې دی. وَادَّعَى الْإِجَارَةَ، اود اجارې دعوه نې اوکړله. بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ بِالدَّرَاهِمِ السُّوْدِ په خلاف د تورو درهمونو د اقرار. لِأَنَّهُ صِفَةٌ فِيْهِ ځکه چې توریدل ددې یو صفت دی. وَقَدْ مَرَّتِ الْمَسْأَلَةُ فِي الْكَفَالَةِ. اودا مسئله په باب الکفاله کې تیره شوې ده. قَالَ (وَيُسْتَحْلَفُ الْمُقَرُّلَهُ عَلَى الْأَجَلِ) او په موده کې به مقرله نه قسم اخستې شی. لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ حَقًّا عَلَيْهِ ځکه چې هغه خپل ځان باندې د یو حق منکر دی. وَالْيَمِيْنُ عَلَى الْمُنْكِرِ. او قسم په منکر باندې وی.

**تشریح:** یو سړی د پور دین اقرار اوکړو. او مقرله دعوه اوکړله. چه دین پور نه دی. فوری دی. نو په مقر به دین فوری لازم وی. اود مقرله څخه به په دې خبره قسم اخستلې شی. چه د دین هیڅ موده نه وه. ځکه چې مقر د حق غیر اقرار سره خپل ځان لپاره د فوری حق دعوه کړې ده. نودا داسې شوه. لکه چې یوکس د بل لپاره د غلام اقرار اوکړی. او ور سره دا دعوه هم اوکړی. چه ما دده نه دا غلام په اجرت باندې اخستې دی. چه په دې صورت کې د مقر تصدیق نه کیږی. نو دلته کښې به هم تصدیق نه کیږی. د امام محمد رحمه الله په نیز، او د یو قول په لحاظ سره د امام شافعی رحمه الله په نیز به پور دین لازم وی. اود مقر څخه به قسم اخستلې شی. چه دین پور وو.

(وَإِنْ قَالَ: که وې ونیل. لَهٗ عَلَيَّ مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ چې د فلانی په ما باندې سل او یو درهم دی. لَزِمَهٗ كُلُّهَا دَرَاهِمُ. نو په ده به واړه درهمونه لازم وی. وَلَوْقَالَ: که وې ونیل. مِائَةٌ وَثَوْبٌ چې سل او یوه کپړه ده. لَزِمَهٗ ثَوْبٌ وَاحِدٌ، نو په ده به یوه کپړه لازم وی. وَالْمَرْجِعُ فِي تَفْسِيْرِ الْمِائَةِ إِلَيْهِ) اود سلو په تفسیر کې به دده اړخ ته رجوع کولې شی. وَهُوَ الْقِيَاسُ فِي الْأَوَّلِ، په رومبی صورت کې هم قیاس دغه دی. وَبِهٖ قَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعی رحمه الله ددې قائل دی. لِأَنَّ الْمِائَةَ مُبْهَمَةٌ ځکه چې سل مبهم دی. وَالدِّرْهَمُ مَعْطُوْفٌ عَلَيْهَا بِالْوَاوِ الْعَاطِفَةِ او درهم په دې باندې معطوف دی په واو عاطفه سره لَا تَفْسِيْرًا لَهَا ددې تفسیر نه دی. فَبَقِيَتِ الْمِائَةُ عَلٰى إِبْهَامِهَا نو لفظ د،، مائة،، پخپل ابهام باندې پاتې شو. كَمَا فِي الْفَصْلِ الثَّانِي لکه څنګه چې په دوهم صورت کې دی.

**تشریح:** مقر اقرار اوکړو. چه زما په ذمه دده سل او بل درهم دی. نو په ده به واړه درهمونه لازم وی. یعنی یو سل یو، او که ده اوونیل. چه دده په ما سل او یوه کپړه ده. نو په ده به د سلو تفسیر کولې شی. چه د سلو نه څه مراد دی؟ درهم مراد دی. اوکه کپړې مراد دی. هم دا حکم د «له علیّ ماة و ثوبان» دی. د قیاس تقاضا خو په،، علیّ ماة و درهم،، کې هم دا ده. چه د مائة تفسیر په مقر باندې پریخودلې شی. لکه چې امام شافعی رحمه الله او په یو روایت کې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی. ځکه چې یو سل خو مبهم دی. او یو درهم په هغې باندې په واو عاطفه سره معطوف دی. د هغې تفسیر نه دی. ځکه چې عطف د بیان لپاره موضوع نه دی. بلکه دا خو د معطوف او معطوف علیه په منځ کې د مغایرت تقاضا کوی. نو لفظ د مائة پخپل ابهام باندې پاتې شو. لکه څنګه چې فصل ثانی یعنی،، له علیّ ماة و ثوب،، دی،، فلا بد من المصیر إلی البیان،،.

وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ وجه د استحسان وَهُوَالْفَرْقُ او هم دا توپیر دی. أَنَّهُمُ اسْتَثْقَلُوْا تَكْرَارَ الدِّرْهَمِ فِي كُلِّ عَدَدٍ داده. چه

دوی هر عدد ته د درهم د لفظ تکرار مشکل ګڼرلي دي. وَاكْتَفَوْا بِذِكْرِهِ عَقِيبَ الْعَدَدَيْنِ. اود دوي (دوه) عددونو نه روسته ذکر کاوه باندې ئې اکتفاء کړې ده. وَهٰذَا فِيمَا يَكْثُرُ اسْتِعْمَالُهُ او دا خبره په دې کي ده.چه د هغې استعمال زيات وی. وَذٰلِكَ عِنْدَ كَثْرَةِ الْوُجُوبِ بِكَثْرَةِ أَسْبَابِهِ او زيات استعمال هغه وخت کيږی. کله چې د اسبابو د زياتوالی په وجه وجوب زيات وی. وَذٰلِكَ فِي الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ وَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ، اودا خبره په دراهمو او دنانيرو، او په مکيلی او موزونی کي کيږی.پاتې شوې کپړې، أَمَّا الثِّيَابُ وَمَا لَا يُكَالُ وَلَا يُوزَنُ او هغه شيان کوم چې کيل او وزن کيږی نه. فَلَا يَكْثُرُ وُجُوبُهَا نو د هغې وجوب زيات نه کيږی. فَبَقِي عَلَى الْحَقِيقَةِ نو هغه په حقيقت باندې پاته پاتې شو.هم. (وَكَذَا إِذَا قَالَ: دغه ډول که دا ئې اوونيل. مِائَةٌ وَثَوْبَانِ) لِمَا بَيَّنَّا چې سل او دوې (دوه) کپړې دی.په مذکوره دليل سره.

**تشريح:** وجه د استحسان داده.چه په عامه توګه (عام طور) باندې لفظ د درهم د مائة بيان کيږی.خکه چې خلګ درهم دوباره ونيل مشکل ګڼرې.او صرف په يو ځل ذکر کاوه باندې اکتفاء کوی.اودا دهغه څيزونو خنې وی.کوم چې زيات استعماليږی.اود زيات استعمال تحقق هغه وخت کيږی. کله چې د زياتو اسبابو په وجه څيزونه په ذمه کي زيات وی.لکه دراهم او دنانير، مکيل او موزون.چه دا په سلم، پور او ثمن کي واجب فی الذمه وی.په خلاف د ثياب او غيرمکيل او غيرموزن، چې ددې وجوب دومره زيات نه واقع کيږی.په دې وجه د ثياب، او غيرمکيل او غيرموزون څيزونو تفسير به په مقر باندې موقوف وی.او په دراهمو او دنانير وغيره کي به موقوف نه وی.

(بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: په خلاف ددې کله چې ئې دا ونيلی وی. مِائَةٌ وَثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ) چې سل او درې کپړې دی. لِأَنَّهُ ذَكَرَ عَدَدَيْنِ مُبْهَمَيْنِ وَأَعْقَبَهُمَا تَفْسِيرًا خکه چې ده دوې (دوه) مبهم عدد ذکر کاوه نه شاته ددې تفسير کړې دې. إِذِ الْأَثْوَابُ لَمْ تُذْكَرْ بِحَرْفِ الْعَطْفِ خکه چې اثواب د جمع په لفظ سره ذکر کول په حرف عطف سره نه دې. فَانْصَرَفَ إِلَيْهِمَا نودا عدد دين ارخ ته اوګرخولې شو. لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْحَاجَةِ إِلَى التَّفْسِيرِ خکه چې د تفسير په اړتيا کي دا دواړه برابر دی. فَكَانَتْ كُلُّهَا ثِيَابًا نو ټولې به کپړې وی.

**تشريح:** او که مقر اوونيل، ،له علیّ مأة و ثلثة اثواب، ،نو ټولې کپړې به لازم وی.يعنی يو سل او درې کپړې،د امام شافعي رحمه الله په نيز به درې کپړې لازم وی.او په ده به د مائة تفسير کولې شی.لکه څنګه چې پورته ذکر شو .مونږ وايو.چه دلته کي مائة او ثلاثة دوې (دوه) مبهم عددونه دی.د دواړو د تفسير اړتيا دې.اوده د ثلاثة نه روسته لفظ د اثواب، د حرف عطف نه بغير ذکر کړې دې.نودا به د دواړو تفسير وی. ، ،فكان كلها ثياب، ،

## په ټوکرۍ کښې د چوارو اقرار سره د دواړو لازميدلو حکم

قَالَ (وَمَنْ أَقَرَّ بِتَمْرٍ فِي قَوْصَرَّةٍ کوم کس چې په ټوکرۍ کي د چوارو اقرار اوکړو. لَزِمَهُ التَّمْرُ وَالْقَوْصَرَّةُ) نو په ده به چوارې د ټوکرۍ سره لازم وی. وَفَسَّرَهُ فِي الْأَصْلِ بِقَوْلِهِ: په مبسوط کي ددې تفسير داسې دې مقر اوونيل. غَصَبْتُ تَمْرًا فِي قَوْصَرَّةٍ. چې ما چوارې په ټوکرۍ کي غصب کړې وې. وَوَجْهُهُ او ددې وجه داده. أَنَّ الْقَوْصَرَّةَ وِعَاءٌ لَهُ وَظَرْفٌ لَهُ، چې ټوکرۍ ددې لپاره لوخې او ظرف دې. وَغَصْبُ الشَّيْءِ وَهُوَ مَظْرُوفٌ او يو شی غصب کول، په داسې حال کي چې هغه په لوخي کي وی. لَا يَتَحَقَّقُ بِدُونِ الظَّرْفِ د لوخي نه بغير نه متحقق کيږی. فَيَلْزَمَانِهِ نو دواړه به لازم وی. وَكَذَا الطَّعَامُ فِي السَّفِينَةِ هم دغه ډول غله ده.په کښتۍ کي ، وَالْحِنْطَةُ فِي الْجَوَالِقِ ،او غنم دی په بار بورياکي ،

**حل اللغة:** **قوصره:** د بانړس ټوکرۍ، **وعاء:** لوخې، **سفينه:** کشتۍ، **جوالق:** د ايختو يا رسۍ نه جوړشوې بوريا، **انتزاع:** راويستل، **اصطبل:** د اس د تړلو ځائې، باړ، **خاتم:** ګوتمه، **حلقة:** ګول دائره، **فص:** غمې، **سيف:** توره، **نصل:** سوکه، ( د تورې تيره طرف) **جفن:** نيام، تيکې، **حمائل:** د حماله جمع ده،د تورې تسمه ( کمربندې)، **ينطوى:** **انطواء**، راټولول، راوغونډول، شامليدل، **حجلة:** چپرکټ، **عيدان:** د عود جمع ده، لرګی ، **كسوه:**



پرده، **منديل:** رومال، **يلف:** (ن) راټولول، **لفا:** راټولول،

**تشريح:** يو کس اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی لپاره په ټوکرۍ ( زنبيل) کي چوارې دی. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه امام محمد رحمه الله په اصل يعنی مبسوط کي ددې مسئلې تفسير غصب سره کړې دې.يعنی مقر اوونيل.چه ما چوارې په ټوکرۍ کي غصب کړی ( يعنی په زبردستۍ اخستي) دی.نو په دې اقرار کي د مقر په ذمه چوارې د ټوکرۍ سره يعنی ظرف او مظروف دواړه لازم وی.اوکه داسې اقرار ئې اوکړو.چه ما باندې د فلانی حيوان (څاروې) دې.په اصطبل ( يعنی باړ) کي .نو صرف څارې به لازم وی.د امام محمد رحمه الله په نيز دلته به هم دواړه لازم وی.په دې اړه کي قاعده کليه داده.چه کوم شی د ظرف کيدلو صلاحيت لری.او د هغې منتقل کول ممکن وی.نود داسې شی په اقرار کي به ظرف او مظروف دواړه لازم وی.لکه د کجورو اقرار په ټوکرۍ کي ، د غلې اقرار په بوريا کي .د کپړې اقرار په رومال کي ،وغيره. او که منتقل کول ممکن نه وی.لکه اصطبل وغيره، نود شيخينو رحمهما الله په نيز به صرف مظروف لازم وی.لکه حيوان (څاروې) وغيره، د امام محمد رحمه الله په نيز به دواړه لازم وی.اوکه دغه شی د ظرف کيدلو صلاحيت نه لری.نو صرف ړومبې شی به لازم وی.لکه چې داسې اووائی.چه ما باندې يو درهم دې په درهم کي ،نوصرف ړومبی درهم به لازم وی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: په خلاف ددې کله چې اووائی. غَصَبْتُ تَمْرًا مِنْ قَوْصَرَّةٍ چې ما کجورې غصب کړی دی.په ټوکرۍ کي . لِأَنَّ كَلِمَةَ مِنْ لِلِانْتِزَاعِ خکه چې لفظ د ، ، من، ، راويستلو لپاره دې. فَيَكُونُ الْإِقْرَارُ بِغَصْبِ الْمَنْزُوعِ. نودا به د راويستلی شوی شی د غصب کاوه اقرار وی. قَالَ: (وَمَنْ أَقَرَّ بِدَابَّةٍ فِي إِصْطَبْلٍ چاچه اقرار اوکړو.د اس په باړ کي ، لَزِمَهُ الدَّابَّةُ خَاصَّةً) نو لازم به وی په ده باندې صرف اس. لِأَنَّ الْإِصْطَبْلَ غَيْرُ مَضْمُونٍ بِالْغَصْبِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ() خکه چې باړ مضمون بالغصب نه وی.د شيخينو رحمهما الله په نيز. وَعَلَى قِيَاسِ قَوْلِ مُحَمَّدٍ يَضْمَنُهُمَا اود امام محمد رحمه الله په قول باندې قياس کاوه سره د دواړو ضامن کيدل پکار دی. وَمِثْلُهُ الطَّعَامُ فِي الْبَيْتِ. قَالَ هم دغه ډول غله په کور کي .فرمائی. (وَمَنْ أَقَرَّ لِغَيْرِهِ بِخَاتَمٍ) وچا چې اقرار اوکړو.د بل لپاره د ګوتمې، لَزِمَهُ الْحَلْقَةُ وَالْفَصُّ) نو لازم به وی په ده باندې ګوتمه او غمې. لِأَنَّ اسْمَ الْخَاتَمِ يَشْمَلُ الْكُلَّ خکه چې لفظ د خاتم ټولو ته ګډ دې. . (وَمَنْ أَقَرَّ لَهُ بِسَيْفٍ کوم کس چې اقرار اوکړو.د تورې، فَلَهُ النَّصْلُ وَالْجَفْنُ وَالْحَمَائِلُ) نود مقرله لپاره به سوکه ( تيره طرف)، تيکې، او تسمه (کمربندۍ) واړه وی. لِأَنَّ الِاسْمَ يَنْطَوِي عَلَى الْكُلِّ خکه چې دا لفظ ټولو ته ګډ دې. . (وَمَنْ أَقَرَّ بِحَجَلَةٍ چاچه اقرار اوکړو د چپرکټ، فَلَهُ الْعِيدَانُ وَالْكِسْوَةُ) نو دده لپاره به لرګی او پرده وی. لِانْطِلَاقِ الِاسْمِ عَلَى الْكُلِّ عُرْفًا. خکه چې عرف کي دا لفظ کُل باندې ونيلې شی. (وَإِنْ قَالَ که وې ونيل. غَصَبْتُ ثَوْبًا فِي مِنْدِيلٍ چې ما کپړه غصب کړې ده.په رومال کي . لَزِمَاهُ جَمِيعًا) نو دواړه به لازم وی. لِأَنَّهُ ظَرْفٌ خکه چې رومال لوخې دې. لِأَنَّ الثَّوْبَ يُلَفُّ فِيهِ. خکه چې کپړه په دې کي راټولولې شی. (وَكَذَا لَوْ قَالَ هم دغه ډول که وې ونيل. عَلَيَّ ثَوْبٌ فِي ثَوْبٍ) چې ما باندې تهان دې.په کپړه کي . لِأَنَّهُ ظَرْفٌ. خکه چې کپړه لوخې دې. بِخِلَافِ قَوْلِهِ: دِرْهَمٌ فِي دِرْهَمٍ په خلاف ددې قول چې درهم دې په درهم کي . حَيْثُ يَلْزَمُهُ وَاحِدٌ چه يو درهم به لازم وی. لِأَنَّهُ ضَرْبٌ لَا ظَرْفٌ خکه چې دا خود ضرب حساب دې، د ظرف نه دې.

**تشريح:** اوکه مقر اوونيل.چه«غصبت من قوصرة» يعنی ما د ټوکرۍ نه کجورې غصب کړې.نو صرف چوارې به لازم وی.زنبيل به لازم نه وی.خکه چې کلمه د ، ، من، ،به د انتزاع ( راويستلو) په معنی کي وی.نو منزوع يعنی کوم شی چې راويستلې شوې دې.هم د هغې د غصب اقرار به وی.

---

[1]) القول الراجح هو قول الشخين رحمهما الله كذا فى ملتقى الأبحر(٣\٤٠٢) وكنز (ص.٢٨٨) وتنوير الأبصار(٤\٥٠٥) والدرالمنتقى (٣\٤٠٢) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٩٦)

## په لسو کپړو کښې د يوې کپړې د اقرار حکم

(وَإِنْ قَالَ: که وې وئيل ثَوْبٌ فِي عَشَرَةِ أَثْوَابٍ چې يوه کپړه ده.په لسو کپړو کې، لَمْ يَلْزَمْهُ إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ (١) نو لازم به نه وی. مګر يوه کپړه.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز، وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائي. لَزِمَهُ أَحَدَ عَشَرَ ثَوْبًا) چې يوولس کپړې به لازم وی. لِأَنَّ النَّفِيسَ مِنَ الثِّيَابِ قَدْ يُلَفُّ فِي عَشَرَةِ أَثْوَابٍ ځکه چې کله کله ښه کپړه په لسو کپړو کې راتولولې شي. فَأَمْكَنَ چور عَلَى الظَّرْفِ نودا په لوخي باندې محمول کول ممکن ده.

**تشريح:** يوسړي اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی يوه کپړه ده.په لسو کپړو کي ،نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به صرف يوه کپړه لازم وی.د امام صاحب رحمه الله قول هم دادې (کافی). علامه زيلعی رحمه الله په تبيين الحقائق کي دا د امام ابوحنيفه رحمه الله رومبې قول منلې دی.امام محمد رحمه الله فرمائي.چه يوولس کپړې به لازم وی.ځکه چې بعض ښه قسم او قيمتی کپړې په څو څو کپړو کي راتولولې شي.نو لفظ د ،،فی ،، په ظرف باندې محمول کول ممکن دی.

## په تيره شوې مسئله کښې د امامانو اختلاف او دلائل

وَلِأَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.أَنَّ حَرْفَ "فِي" يُسْتَعْمَلُ فِي الْبَيْنِ وَالْوَسَطِ أَيْضًا، چې کلمه د ،،فی ،، د منځ او وسط په معنی کي هم استعمالولې شي. قَالَ اللَّهُ تَعَالَى د الله جل جلاله ارشاد دې ،، {فَادْخُلِي فِي عِبَادِي} روسته داخل شه زما په بندګانو کي ،، (الفجر:۲۹) أَيْ بَيْنَ عِبَادِي، يعنی زما د بندګانو په منځ کي ، فَوَقَعَ الشَّكُّ نو شك پيدا شو.

**تشريح:** د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه لفظ د فی د وسط او منځ لپاره استعماليږی.قال الله تعالی ﴿فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ۝ وَادْخُلِي جَنَّتِي ۝﴾ ای بين عبادی ، نود يو نه زيات کي شك پيدا شو.او اصل د ذمو براءت دې.ځکه چې دا د حقوقو نه خالی او عاری پيدا کړې شوې دې.نود مضبوط دليل نه بغير به دده حقوقو سره مشغولول جائز نه وی.

وَالْأَصْلُ بَرَاءَةُ الذِّمَمِ، او اصل د ذمو بری کيدل دی. عَلَى أَنَّ كُلَّ ثَوْبٍ مُوعًى وَلَيْسَ بِوِعَاءٍ علاوه ددې نه هره يوه کپړه مظروف ده.ظرف نه ده. فَتَعَذَّرَ چور عَلَى الظَّرْفِ نودا په ظرف باندې محمول کول مشکل ده. فَتَعَيَّنَ الْأَوَّلُ نود محمل کيدلو لپاره رومبۍ معنی متعين شوه.

**تشريح:** يعنی مذکوره قول،، ثـوب فی عشـرة أثـواب،، کي د لسو کپړو مجموعه د يوې کپړې لپاره ظرف نه دې.بلکه هره کپړه مظروف ده.ځکه چې هرکله يوه کپړه په څوکپړو کي راتولولې شي.نوهره يوه کپړه به د ما وراء ( يعنی د علاوه) په حق کي مظروف وی.او ظرف به صرف هغه کپړه وی.کومه چې د ټولو دپاځه ده.هرکله چې د لسو کپړو يوې کپړې لپاره ظرف نه کيدل ثابت شو .نو ،،فی ،، په ظرف باندې محمول کول ناممکن دی.نودا متعين شو.چه ده په لسو کي يوه کپړه اوښکلې ده.

(وَلَوْ قَالَ: که وې وئيل. لِفُلَانٍ عَلَيَّ خَمْسَةٌ فِي خَمْسَةٍ چې د فلانی په ما پنځه په پنځو کي دی. يُرِيدُ الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ او هغه د ضرب او حساب قصد کوی. لَزِمَهُ خَمْسَةٌ) نو صرف پنځه به لازم وی. لِأَنَّ الضَّرْبَ لَا يُكْثِرُ الْمَالَ. ځکه چې ضرب مال نه زياتوی. وَقَالَ الْحَسَنُ: حسن رحمه الله فرمائيلی دی. يَلْزَمُهُ خَمْسَةٌ وَعِشْرُونَ چې په ده به پنځويشت لازم وی.

**تشريح:** يوکس اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی پنځه دی.په پنځو کي ،نو صرف پنځه په لازم وی.اګرچه هغه د ضرب او حساب نيت اوکړی.ځکه چې ضرب سره صرف اجزاء زياتيږی.اصل مال نه زياتيږی.نود ،، خمسة

(١) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في نتائج الأفكار(٣١٩\٧) وكنز (ص،٢٨٨) والدرالمحتار (٥٠٥\١٤)



فی خمسة،، مطلب دا شو.چه په پنځو کي د هر يو پنځه پنځه جزءه دی.نود پنځو درهمو به پنځه ويشت اجزاء وی.دا نه چې د پنځو درهمو څخه به پنځه ويشت جوړيږی.لکه که د وزن په حساب سره د پنځو درهمو زر جزءه (او حصې) هم جوړې کړې شی.نو يو قيراط به هم وزن زيات نه وی.ددې نه علاوه کلمه د ،،فی ،، په حقيقت کي ظرفيت لپاره وی.او درهم د درهم لپاره په ظرف او غيرظرف کي ددې استعمال مجازاً دې.چه دا کله په معنی د مع سره راځی.لکه ﴿فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ۝ وَادْخُلِي جَنَّتِي ۝﴾ ای معی عبادی او کله په معنی د علی لکه ﴿وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ النَّخْلِ﴾ ای علی جذوعها،، او په دوی کي يو د بل نه اولی (او راجح) نه دې.نود کلام د پيل څخه به پنځه درهمه لازم وی.او آخر د کلام به لغوه وی.د حسن بن زياد رحمه الله په نيز به پنځويشت لازم وی.ځکه چې پنځو له په پنځو کي ضرب ور کاوه سره پنځويشت جوړيږی. ( وقد مر خوابه) د امام زفر رحمه الله په نيز به لس لازم وی.زموږ په نيز به لس هغه وخت لازم وی.کله چې فی د مع په معنی کي واخستلې شی.

وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الطَّلَاقِ او دا موږ په طلاق کي ذکر کړی دی.

**تشريح:** دا مسئله په کتاب الطلاق کي صراحة ذکر نه ده.بلکه،،انت طالق ثنتين فی ثنتين،، سره متعلق چې کوم اختلاف زموږ اود امام زفر رحمه الله په منځ کي دې.د هغې نه دا مفهوم معلوميږی.البته دا مسئله په کتاب الطلاق کي صراحة د جامع صغير په شروح کي ذکر ده.

(وَلَوْ قَالَ وکه ده اووئيل. أَرَدْتُ خَمْسَةً مَعَ خَمْسَةٍ چې ما د پنځو سره د پنځو اراده کړې ده. لَزِمَهُ عَشَرَةٌ) نو په ده به لس لازم وی. لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُ. ځکه چې لفظ ددې محتمل دی. (وَلَوْ قَالَ وکه ده اووئيل. لَهُ عَلَيَّ مِنْ دِرْهَمٍ إِلَى عَشَرَةٍ چې د فلانی په ما باندې د يو نه لسو پورې دی. أَوْ قَالَ يا وې وئيل. مَا بَيْنَ دِرْهَمٍ إِلَى عَشَرَةٍ چې په منځ د يو درهم لس درهمه دی. لَزِمَهُ تِسْعَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو په ده به نهه لازم وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، فَيَلْزَمُهُ الِابْتِدَاءُ وَمَا بَعْدَهُ نو پيل او ددې نه روستنۍ به لازم وی. وَتَسْقُطُ الْغَايَةُ، و غايت( انتهاء) ساقط شو. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي. يَلْزَمُهُ الْعَشَرَةُ كُلُّهَا) چې پوره لس به لازم وی. فَتَدْخُلُ الْغَايَتَانِ.نو دواړه غايتونه به داخل وی. وَقَالَ زُفَرُ: امام زفر رحمه الله فرمائي. يَلْزَمُهُ ثَمَانِيَةٌ چې اته به لازم وی. وَلَا تَدْخُلُ الْغَايَتَانِ او دواړه غايتونه به داخل نه وی.

**تشريح:** يو سړي اقرار اوکړو.چه ما باندې د يو نه لس پورې، يا په منځ د يو نه لس پورې دی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به نهه لازم وی.د صاحبينو رحمهما الله په نيز او په يو قول کي امام شافعی رحمه الله ، په يو روايت کي امام مالك رحمه الله ، په يو وجه کي د امام محمد رحمه الله په نيز لس لازم وی.ګويا د پيل او انتهاء دواړه حدونه به په محدود کي داخل وی.دوی دا فرمائي.چه د دواړو حدونو موجود کيدل ضروری دی.ځکه چې د امر وجودی لپاره معدوم شئ حد نشی کيدلې.د امام زفر رحمه الله په نيز به اته لازم وی.نو ددوی په نيز به دواړه حدونه په محدود کي داخل نه وی.دوی دا فرمائي.چه بعض غايتونه په مغيا کي داخليږی.او بعض نه داخليږی.نو شك واقع شو.نود شك په وجه به حدونه په محدود کی نه داخليږی.

(وَلَوْ قَالَ وکه وې وئيل. لَهُ مِنْ دَارِي مَا بَيْنَ هَذَا الْحَائِطِ إِلَى هَذَا الْحَائِطِ چې د فلانی لپاره زما په کور کي ددې ديوال نه تردې ديواله پورې دی. فَلَهُ مَا بَيْنَهُمَا نو مقرله لپاره به هغه وی.کوم چې د ديوالونو په منځ کي دې. وَلَيْسَ لَهُ مِنَ الْحَائِطَيْنِ شَيْءٌ) او په ديوالونو کي به هيڅ نه وی. وَقَدْ مَرَّتِ الدَّلَائِلُ فِي الطَّلَاقِ او دلائل په کتاب الطلاق کي تير شوی دی.

**تشريح:** اوکه مقر اووئيل.چه د فلانی لپاره زما کور ددې ديوال نه تردې ديواله پورې دې.نو بالاجماع به مقرله لپاره هغه برخه وی.کومه چې د دواړو په منځ کي ده.ځکه چې اصل هم دادې.چه حدونه په محدود کي

نه داخلېږي.ځكه چې د حد او محدود په منځ كې مغايرت وي.خو په ړومبي صورت كې امام صاحب رحمه الله ړومبې حد يعنى پيل په دې وجه داخل منلې دې.چه ما فوق الواحد يعنى د دوهم او دريم وجود د ړومبي نه بغير نه كيږي.حاصل داچه په غايت اولى كې د امام صاحب رحمه الله قول استحسان دې.او په غايت ثانيه كې قياس دې.اود صاحبينو رحمهما الله قول دواړو كې استحسان دې.اود امام زفر رحمه الله قول دواړو كې قياس دې.

### د حمل لپاره د اقرار حكم

(فَصْلٌ) فصل: (وَمَنْ قَالَ: لِحَمْلِ فُلَانَةَ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ) چې د فلانى د حمل لپاره ما باندې زر درهم دي. قَالَ نوكه هغه دا اووائي. أَوْصَى لَهُ فُلَانٌ چې فلانى دده لپاره وصيت كړې وو. أَوْمَاتَ أَبُوهُ يا دده پلار مړ شوې دې. فَوَرِثَهُ چې دې دهغه وارث دې. فَالْإِقْرَارُ صَحِيحٌ نو اقرار صحيح دې. لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِسَبَبٍ صَالِحٍ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ لَهُ ځكه چې ده د حمل لپاره د ملك د ثبوت د يو صالح سبب اقرار كړې دې.

تشريح: علامه مرغينانى رحمه الله په دې فصل كې د حمل مسئلې بيانوي.چه د حمل مسئلې د غير نه صورةً او معنى مغاير دي.په دې وجه دا په جلا فصل كې راوړي.پاتې شوه مسئله د خيار ددې سره مولښتى كول،نودا د مبسوط په تابعدارئ باندې مبنى ده.چه په هغې كې هم مسئله د خيار د حمل مسئلو نه روسته ذكر ده.صرف دومره خبره ده.چه صاحب د كتاب دواړه په يو فصل كې ذكر كړې دي. «وفى المبسوط بوّب لكل عليحدة»

په متن كې چې كومه مسئله ذكركړې شوې ده.د هغې وضاحت دادې.كه يوكس د حمل لپاره اقرار اوكړي.نو د هغې درې صورتونه دي.يا به څه سبب بيانوي.او يا نه.بيا به سبب يا صالح وي.او يا غير صالح،كه سبب صالح بيان كړي.مثلاً داسې اووائي.چه د فلانئ ښځې حمل لپاره ما باندې زر درهم لازم دي.چه ددې وصيت فلانى سړي ددې حمل لپاره كړې وو.يا ددې حمل پلار مړ شوې دې.اودا روپئ ده په ميراث كې حاصل كړې دي.نودا اقرار به صحيح وي.ځكه چې اقرار كونكي حمل لپاره د ملك د ثبوت يو سبب صالح بيان كړې دې.چه په دې باندې عمل ممكن دې.

(ثُمَّ إِذَا جَاءَتْ بِهِ فِي مُدَّةٍ) بيا كه دا دومره موده روسته بچې راوړي. يُعْلَمُ أَنَّهُ كَانَ قَائِمًا وَقْتَ الْإِقْرَارِ چې ددې نه دا معلومېږي.چه د اقرار په وخت دا بچې په نس كې موجود وو. لَزِمَهُ نو اقرار به لازم وي. فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ مَيِّتًا او كه مړ بچې پيدا شي. فَالْمَالُ لِلْمُوصِي وَالْمُوَرِّثِ نو مال به دموصى يا وارث وي. حَتَّى يُقْسَمَ بَيْنَ وَرَثَتِهِ تردې چې دده په وارثانو كې به تقسيمولې شي. لِأَنَّهُ إِقْرَارٌ فِي الْحَقِيقَةِ لَهُمَا ځكه چې دا اقرار په حقيقت كې هم ددوى لپاره دې. وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْجَنِينِ بَعْدَ الْوِلَادَةِ حمل اړخ ته به خود زيږيدل نه روسته منتقل كيږي. وَلَمْ يَنْتَقِلْ حالانكه منتقل شوې نه دې.

تشريح: اوس كه دا ښځه دا جنين ( د حمل بچې) دومره موده روسته ژوندې راوړي.چه ددې نه دا معلومېږي .چه د اقرار په وخت دا په نس كې موجود وو.نو د كوم څه چې مقر اقرار كړې دې. هغه به په ده باندې لازم وي.اوكه دا ( دحمل بچې) مړ راوړي.نود اقرار مال به د موصى يا مورث لپاره وي.چه دا به دده په وارثانو تقسيمولې شي.امام شافعى او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي.دليل دادې.چه دا اقرار په حقيقت كې د موصى يا مورث لپاره دې.حمل اړخ ته به هغه وخت منتقل كيږي.كله چې دا ژوندې پيدا شي.حالانكه دا مړ پيدا شوې دې.نو اقرار به نه منتقل كيږي.د امام مالك رحمه الله په نيز د سره اقرار باطل شو.

«قوله: لى مدة يعلم......» د حمل د مودې د اندازه كاوه دوې (دوه) طريقې دي.يوه حقيقى ده.او يوه حكمى ده.حقيقى داده.چه وضع د حمل شپږ مياشتو نه په كم كې وي.او حكمى داده.چه د شپږ مياشتو نه تر دوې (دوه) كالو په منځ كې وي.او ښځه معتده وي.په دې صورت كې د نسب د ثبوت حكم كيږي.اوكه دا معتده نه وي.او وضع د حمل شپږ مياشتو نه زياته كې وي.نو دې به د هيڅ شئ مستحق نه وي.بيا اوله موده د



اقرار د وخت نه معتبر ده.لكه څنګه چې صدر الشريعه په شرح وقايه كې ذكر كړې دي.اويو قول دا هم دې.چه د مورث د مرګ د وخت نه معتبر دې.لكه څنګه چې مبسوط او كافى وغيره كې ذكر دي.

(وَلَوْ جَاءَتْ بِوَلَدَيْنِ حَيَّيْنِ) وكه دا دوې (دوه) ژوندى بچى راوړي. فَالْمَالُ بَيْنَهُمَا نو مال به په دوى كې مشترك وي.

تشريح: اوكه ده ژوندى دوې (دوه) بچى راوړل.( كه مذكر وى اوكه مؤنث وى ) نو مال به په دوى دواړو كې مشترك وي.ځكه چې د حمل لفظ دوى دواړو ته ګډ دې.اوكه يو مذكر وي.او يو مؤنث وي.نود وصيت په صورت كې به نصف نصف اود ميراث په صورت كې به﴿لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ﴾ وي.يعنى مذكر لپاره دوه،او مؤنث لپاره به يوه برخه وي.

(وَلَوْ قَالَ الْمُقِرُّ) او كه اقرار كونكى دا اووئيل. عَنَى چې حمل زما په لاس راخرڅ كړې دې. أَوْ أَقْرَضَنِي يا نې ماته پور راكړې دې. لَمْ يَلْزَمْهُ شَيْءٌ نو په ده به هيڅ لازم نه وي. لِأَنَّهُ بَيَّنَ مُسْتَحِيلًا ځكه چې ده داسې سبب بيان كړې دې.چه دا محال ( او ناممكن) دې.

تشريح: «قوله: باعنى......» او كه اقرار كونكى داسې سبب بيان كړو.كوم چې غيرمتصور دې.مثلاً دا نې اووئيل.چه دې حمل زما په لاس يو شئ خرڅ كړې دې.يا ماته نې مال پور راكړې دې.نو نه به اقرار صحيح وي.اونه به څه واجب وي.ځكه چې د حمل دچا په لاس خرڅول، يا پور وركول، كوم چې ده سبب بيان كړې دې.دا حقيقتاً هم او حكماً هم غيرمتصور دې.نو دده كلام به لغوه وي.او حكم به هم نه جارى كيږي.

سوال• بيا خودا د اقرار نه رجوع كول شو.اودا صحيح نه دې.اګرچه موصولاً وي ؟

ځواب• دا رجوع نه ده.بلكه د محتمل سبب بيان دې.ځكه چې بعض جاهلانو باندې دا امر مشتبه كيږي.او دوى د خپلې ناپوهتيا په وجه دا ګنړي.چه جنين ( د حمل بچې ) باندې هم ولايت ثابتيږي.ددې غلط فهمئ په نتيجه كې دوى څه معامله كوي.اود جنين لپاره دڅه مال اقراركوي.او سبب بيانوي.

سوال• لكه څنګه چې د جنين نه بيع او پور اخستل ناممكن دي.دغه ډول د رضيع ( د پيو يعنى د تى ماشوم) نه هم غير متصور دې.حالانكه كه څوك د رضيع لپاره د زر ( درهمو) اقرار اوكړي.او بيع، اقراض يا اجاره سبب بيان كړي.نو اقرار صحيح كيږي.اود مقر نه د مال مؤاخذه كولې شي ؟

ځواب• رضيع اګرچه پخپله تجارت وغيره نشى كولې.خود خپل ولى يا نائب ( د قاضى او پلار) د اړخه د تجارت وغيره په سبب د دين مستحق كيداې شي.او هركله چې دا خبره د نائب په ذريعه متصور ده.نو د مقر لپاره هغه اړخ د ا قرار نسبت كول جائز دي.، فلا اشكال،،.

### د مبهم اقرار حكم

قَالَ (وَإِنْ أَبْهَمَ الْإِقْرَارَ) وكه اقرار نې مبهم اوساتلو. لَمْ يَصِحَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ،[1] نو صحيح به نه وي.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز، وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائى. يَصِحُّ چې صحيح به وي. لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مِنَ الْحُجَجِ ځكه چې اقرار هم د حجتونو څخه دې. فَيَجِبُ إِعْمَالُهُ نو په دې عمل كول ضرورى وي. وَقَدْ أَمْكَنَ بِالْحَمْلِ عَلَى السَّبَبِ الصَّالِحِ. او دا ممكن ده.په صالح سبب باندې محمول كاوه سره

تشريح: كه اقرار كونكى اقرار مبهم اوساتلو.يعنى صالح يا غير صالح هيڅ سبب نې بيان نكړو.نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به اقرار صحيح نه وي.د بعضو په قول امام ابوحنيفه رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام شافعى رحمه الله قول هم دادې.د امام محمد رحمه الله په نيز اقرار بهرصورت صحيح دې.امام مالك او امام احمد

[1]) القول الراجح هو قول أبى يوسف رحمه الله كذا فى ملتقى الأبحر(٤٠٤/٣) و كنز الدقائق (ص،٢٨٨) والبحر(٢٥٢/٧) ولعناية (٣٢٥/٧) ونتائج الأفكار(٣٣٥/٧) نقلاً عن القول الراجح (٢٠٠/٢)

هم ددې قائل دی.او د امام شافعي رحمه الله اصح قول هم دا دې.ځکه چې اقرار هم د شرعي حجتونو څخه يو حجت دې.نو ترکومه پورې چې ممکن وي.عمل کول به ضروري وي.نو د صريح کيدلو په صورت کې به په يو صالح سبب (وصيت يا ميراث) باندې محمول کولې شي.

وَلِأَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.أَنَّ الْإِقْرَارَ مُطْلَقَةً يَنْصَرِفُ إِلَى الْإِقْرَارِ چې مطلق اقرار هم هغه اړخ ته ګرځولې شي بِسَبَبِ التِّجَارَةِ،کوم چې د تجارت په سبب سره وي.وَلِهَذَا حُمِلَ إِقْرَارُ الْعَبْدِ الْمَأْذُونِ لَهُ هم په دې وجه عبد ماذون (هغه غلام چې هغه ته دده آقا د تجارت اجازت ورکړې وي) وَأَحَدِ الْمُتَفَاوِضَيْنِ عَلَيْهِ او مفاوضينوکې د يو شريکوال اقرار هم په دې باندې محمول کولې شي. فَيَصِيرُ نودا به داسې وي.كَمَا إِذَا صَرَّحَ بِهِ. لکه چې ده تصريح کړې وي.

**تشريح:** د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه مطلق اقرار داسې اقرار اړخ ته ګرځولې شي.کوم چې د تجارت په سبب سره وي.لکه په عبد ماذون يا متفاوضين کې که يو شريك څه مطلق اقرار اوکړي.نود تجارت سبب باندې به محمول کولې شي.نود اقرار کونکې مبهم اقرار داسې شو.لکه چې ده تصريح اوکړله.چه د حمل دا مال ما باندې د تجارت په وجه لازم دې.او چونکه داسې قسمه مبهم اقرار باطل دې.نو مبهم اقرار به هم باطل وي.

قَالَ (وَمَنْ أَقَرَّ بِحَمْلِ جَارِيَةٍ که د يو کس لپاره ئې د وينځې أَوْ حَمْلِ شَاةٍ لِرَجُلٍ يا د وزه د حمل اقرار اوکړو. صَحَّ إِقْرَارُهُ نو اقرار صحيح دې. وَلَزِمَهُ) او په ده باندې لازم دې.لِأَنَّ لَهُ وَجْهًا صَحِيحًا ځکه چې ددې اقرار صحيح وجه موجود ده.وَهُوَ الْوَصِيَّةُ بِهِ مِنْ جِهَةِ غَيْرِهِ او هغه دغير د اړخه ددې حمل وصيت دې. فَحُمِلَ عَلَيْهِ نو هم په دې به محمول کولې شي.

**تشريح:** که يوکس دچا لپاره د حمل اقرار اوکړي.نو اقرار بالاتفاق صحيح دې.(که هغه د وينځې حمل وي اوکه د څاروی حمل وي).اګرچه اقرار کونکې ددې هيڅ سبب بيان نکړي.ځکه چې ددې اقرار صحيح وجه ممکن ده.دا په دې طريقه کيداې شي.چه يو مړکيدونکي ددې وصيت کړې وي.او دده وارثان اقرار کوي.چه دا حمل د فلانی لپاره دې.نودا به په جواز باندې محمول کولې شي.ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.او امام مزنی رحمه الله چې د امام شافعي رحمه الله دا قول نقل کړې دې.چه د اقرار مطلق کيدلو په صورت کې به صحيح نه وي.دا ددوی غير اصح قول دې.

قَالَ (وَمَنْ أَقَرَّ بِشَرْطِ الْخِيَارِ چاچه د شرط خيار اقرار اوکړو. بَطَلَ الشَّرْطُ) نو شرط باطل دې. لِأَنَّ الْخِيَارَ لِلْفَسْخِ ځکه چې خيار د فسخ لپاره وي.وَالْإِخْبَارُ لَا يَحْتَمِلُهُ او اخبار ددې محتمل نه دې. (وَلَزِمَهُ الْمَالُ) او د مال لازميدل، لِوُجُودِ الصِّيغَةِ الْمُلْزِمَةِ د ملزمې صيغې په وجه دی. وَلَمْ تَنْعَدِمْ بِهَذَا الشَّرْطِ الْبَاطِلِ،او د باطل شرط په وجه لزوم نه ماتيږي. وَاللَّهُ أَعْلَمُ

**تشريح:** که زيد د بکر لپاره د قرض، يا غصب، يا وديعت، يا عاريت (قائمه يا مستهلکه) اقرار په دې شرط باندې اوکړو.چه ماته درې ورځو پورې پخپل اقرار کې اختيار دې.نو اقرار به صحيح وي.او شرط به باطل وي.د شرط د باطل کيدلو په وجه.د شرط باطليدل په دې وجه دی.چه خيار په دې عرض سره کيږي.چه کله اوغواړي.فسخ کړي.او اقرار اخبار دې.چه دا د خيار قابل نه دې.ځکه که خبر صادق دې.نو په دې باندې عمل کول ضروری دی.که هغه اختيار کړي.او که نکړي.اوکه کاذب دې.نو ددې ردکول ضروری دی.چه دا دده په اختيار او عدم اختيار سره نشي بدليدلې.د شرط خيار اثر عقود (بيع وغيره) کې کيږي.چه په دې سره د عقد صفت متغير کيږي.او صاحب دخيار ته د عقد فسخ کولو، او د پاته ساتلو اختيار وي.پاتې شو د اقرا صحيح کيدل باندې مال لازميدل.دا ځکه چې په کوم لفظ سره ده اقرار کړې دې.يعنی ،، علی ،، وغيره.دا صيغه ملزمه ده.او کوم شئ چې لازم شي.هغه په شرط باطل سره نه معدوم کيږي.



## باب الاستثناء وما في معناه

ژباړه: (دا) باب د استثناء او د هغه څه (په بيان کې دې) کوم چې ددې په معنی کې دی.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله د مغير نه بغير د موجب اقرار د بيان نه فارغ شو.نود موجب اقرار سره د مغير نه بيل کوي.ځکه چې اصل عدم تغير دې.استثناء، ثنی په معنی د صرف نه استفعال دې.د يو څوځيزونو نه د څه اوبنکلو نه روسته د پاته شوی تکلم ته زموږ په نيز استثناء وائي.قال الله تعالى ﴿فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا﴾ ددې صحت لپاره دا شرط دې.چه مستثنی به مستثنی منه سره متصلاً ذکر وي.که د څه وقفې نه روسته ئې ذکرکوي.نو (سوا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په نيز) صحيح نه ده.البته که وقفه دڅه اړتيا په وجه وي.لکه ساه اخستل، توخې راتګ وغيره.

### د اقرار سره د متصل استثناء حکم

قَالَ (وَمَنِ اسْتَثْنَى چاچه استثناء اوکړله. مُتَّصِلًا بِإِقْرَارِهِ د خپل اقرار سره يوځائې، صَحَّ الِاسْتِثْنَاءُ نو استثناء به صحيح وي. وَلَزِمَهُ الْبَاقِي) او پاته به لازم وي.

**تشريح:** مقر چې د کوم شئ اقرار کړې دې.هغې کې د بعض استثناء کول صحيح دی.په دې شرط چې متصلاً وي.که استثناء کمه وي. ﴿كما في قوله لفلان عليّ ألف إلا أربع مائة﴾ اوکه زياته وي. ﴿كما في قوله لفلان عليّ ألف إلا ست مائة﴾ اوس چې کوم څه پاته پاتې شي.هغه به په مقر باندې لازم وي.خود کُل استثناء کول صحيح نه ده.فاسد ده.(جوهره).ځکه چې د استثناء نه روسته څه نا څه پاته پاتې کيدل ضروری دی.

¶ عندالبعض د فراء نحوی په نيز د اکثر استثناء هم صحيح نه ده.ځکه چې اهل عرب په دې باندې تکلم نه کوی.امام زفر، امام احمد، او ابن درستويه نحوی رحمهم الله هم ددې قائل دی.او د غير روايت په اصولو کې د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دا نقل دی.خود اکثرو عالمانو په نيز د اکثر استثناء هم جائز ده.

¶ د جواز دليل دا آيت دې. ﴿يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ۝ قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ۝ نِصْفَهُ أَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا ۝ أَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا﴾ ولاړ اوسه د شپې خو لږه شان برخه نيمه شپه يا ددې نه هم کمه کړه، لږه شان يا زيات کړه په دې باندې،،او ددې نه زيات مضبوط دليل هغه آيت دې.کوم چې ابن حاجب په مختصرالاصول کې ذکر کړې دې.يعنی ﴿وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ﴾ ،،لار به اوکنم دوی ټولو ته خوکوم چې ستا خاص بنده ګان دی،،ددې نه روسته فرمائی ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ﴾،کوم چې زما بنده ګان دی.ستا په دوی باندې هيڅ زور نشته.خو کوم چې ستا په لار روان شو، د ګمراه شوو نه،، وجه د استدلال داده.چه د مخلصينو کمی ده.او د غاوين (ګمراهانو) کثرت دې. په دليل د قول د الله تعالى چه ﴿وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ﴾ بيا دا وينا هم غلطه ده.چه عربو ددې تکلم نه دې کړې،، هل تکلمت به العرب فقال الشاعر:

أدوا التي نقصت تسعين من مأة ثم إبعثوا حكماً بالعدل حكاماً

لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ مَعَ الْجُمْلَةِ عِبَارَةٌ عَنِ الْبَاقِي ځکه چې استثناء جملې سره د پاته نه عبارت دې.وَلَكِنْ لَا بُدَّ مِنَ الِاتِّصَالِ،خو متصل کيدل ضروری دی. (وَسَوَاءٌ اسْتَثْنَى الْأَقَلَّ أَوِ الْأَكْثَرَ) که د قليل وي.او که د کثير وي.

**تشريح:** يعنی استثناء خوجملې سره د پاته نه عبارت دې.مطلب دادې.چه کله اقرار کونکی کلام کې استثناء ملاؤ کړله.نو اوس ملاوولو سره چې کوم پاته پاتی شو.هم دا دده د عبارت مفاد دې.دا په زيات تشريح سره داسې اوګڼره.چه په قول د مقر،،له عليّ عشرة دراهم إلا خمسة،،کې دوې (دوه) احتماله کيداې شی.① يو دا چې په ده باندې لس درهمه ثابت وي.بيا ددې نه پنځه مستثنی شی.② دوهم داچه په لسو کې پنځه اوځی.پاته پنځو باندې د ثبوت حکم وی.هم دا احتمال صحيح دې.ځکه که څوك خپلې ښځې ته دا اووائی.چه تا باندې

درې طلاقه سوا د دوو نه،نو ددې مطلب دا نه وی.چه درې طلاقه ثابت شو.او هغې نه دوې «دوه» اووتل.خکه چې د دریو طلاقونو ثابتیدلو نه روسته به خو دا مطلقه مغلظه بائنه شی.او ددې گرځول به هیڅ گټور نه وی.بلکه مطلب دادې.چه د دریو طلاقونو نه چې دوې «دوه» اووتل.او کوم پاته پاتې شو.هغه تا باندې ثابت دی.نو یو طلاق به ثابت وی.نوهم دغه ډول د قول مذکور مطلب هم دادې.چه د لسو نه پنځه اووتل.نو کوم چې پاته پاتې شو.هغه ما باندې ثابت دی.

فَإِنِ اسْتَثْنَى الْجَمِيعَ:نو که د کُل استثناء ئې اوکړله. لَزِمَهُ الْإِقْرَارُ:نو اقرار به لازم وی. وَبَطَلَ الِاسْتِثْنَاءُ:او استثناء به باطل وی. لِأَنَّهُ تَكَلُّمٌ بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الثُّنْيَا:خکه د استثناء نه روسته چې څه پاته پاتې شی.د هغې د ونیلو نوم استثناء ده. وَلَا حَاصِلَ بَعْدَهُ:او د کُل د استثناء نه روسته هیڅ پاته نشته. فَيَكُونُ رُجُوعًا:نودا به د اقرار نه رجوع کول وی. وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ فِي الطَّلَاقِ او وجه په کتاب الطلاق کې تیره شوې ده.

تشریح: که یوك د کُل استثناء اوکړله.مثلاً وې ونیل،،لفلان علیّ إلا ألف درهم،،نو اقرار به لازم وی.او استثناء به باطل وی.خکه چې دلته کې هیڅ پاته پاتې نشو.حالاتکه د استثناء نه روسته څه نا څه پاته پاتې کیدل ضروری دی.گنی د اقرار څخه به رجوع کول وی.چه دا جائز نه دی.په دې وجه ئې اوفرمائیل.چه اقرار به لازم وی.او استثناء به باطل وی.

تنبیه: د کُل نه د کُل استثناء باطلیدل هغه وخت دی.کله چې استثناء په لفظ د مستثنی منه سره وی.مثلاً داسې اووائی. ﴿له علیّ عشرة إلا عشرة ، هؤلاء أحرار إلا هؤلاء ، نسائی طوالق إلا نسائی ، عبیدی أحرار إلا عبیدی﴾ او که استثناء د لفظ مستثنی منه نه په علاوه سره وی.مثلاً داسې اووائی. ﴿عبیدی أحرار إلا هؤلاء ، نسائی طوالق إلا هؤلاء ، نسائی طوالق إلا زینب ، وعمرة و فاطمة﴾ (حق أتی علیّ الکل) نودا استثناء صحیح نه ده.لکه چې صاحب دهدایه رحمه الله د خپل کتاب الزیادات په،،ابواب الایمان،، کې ددې تصریح کړې ده. حیث قال ﴿إستثناء الکل من الکل إنما لا یصح إذا کان الاستثناء بعین ذالك اللفظ أما إذا کان بغیر ذالك اللفظ فیصح کما إذا قال نسائی طوالق إلا نسائی لا یصح الإستثناء ولو قال إلا عمرة وزینب و سعاد حق أتی علی الکل صح﴾

صاحب د نهایه رحمه الله ددې دنقل کاوه نه روسته فرمائیلی دی.چه دا توپیر په یوه فقهی معنی باندې مبنی دې.او هغه داچه استثناء تصرف لفظی ده.نو ددې بناء به په صحت د لفظ باندې وی.په صحت د حکم باندې به نه وی.آیا نه گورې، که یو سړې خپلې ښځې ته دا اووائی. ﴿أنت طالق ست طلقات إلا أربعا﴾ نو استثناء صحیح ده.تردې چې دوې «دوه» طلاقونه واقع کیږی.اگرچه د حکم په رو سره د شپږو طلاقونو صحت نشته.خکه چې د دریو طلاقونو نه زیاتی خو د سره طلاق نه وی.ددې باوجود دا نشی گنړلې کیدې.چه لکه ده دا اوونیل.چه ﴿أنت طالق ثلاثا إلا اربعا﴾ وجه هم داده.چه د استثناء صحت د لفظ د صحت تابع ده.د حکم د صحت تابع نه ده.

## دراهم او دنانیر سره ددې د غیر د استثناء حکم

وَلَوْ قَالَ:که وې ونیل. لَهُ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا دِينَارًا چې د فلانی زما په ذمه سل درهم دی.خو یو دینار، أَوْ إِلَّا قَفِيزَ حِنْطَةٍ:یا مگر د غنمو یو قفیز، لَزِمَهُ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا قِيمَةَ الدِّينَارِ:نو په ده به لازم وی.سل درهمه سوا د یو دینار نه، أَوِ الْقَفِيزِ:یا (سوا) د یو قفیز د قیمت نه. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ([1])اودا د شیخینو رحمهما الله په نیز دی. وَلَوْ قَالَ:وکه دا ئې اوونیل. لَهُ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا ثَوْبًا چې د فلانی زما په ذمه سل درهم دی.خو یو تان، لَمْ يَصِحَّ الِاسْتِثْنَاءُ:نو استثناء به صحیح نه وی. وَقَالَ مُحَمَّدٌ:امام محمد رحمه الله فرمائی. لَا يَصِحُّ فِيهِمَا) چې په دواړو

[1]) القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله کذا فی المبسوط للسرخسی رحمه الله و ردالمحتار(٥١٠\١٤) ومجمع الأنهر(٤٠٧\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٠١\٢)



صورتونو کې به صحیح نه وی. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ:امام شافعی رحمه الله فرمائی. يَصِحُّ فِيهِمَا. چې دواړو صورتونو کې به صحیح وی. وَلِمُحَمَّدٍ د امام محمد رحمه الله دلیل دادې. أَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ مَا چې استثناء داسې شی دې. لَوْلَاهُ كه چرې دا نه وې. لَدَخَلَ تَحْتَ اللَّفْظِ،نودا به دلفظ لاندې نه داخلیدلو. وَهَذَا لَا يَتَحَقَّقُ فِي خِلَافِ الْجِنْسِ.اودا خبره په خلاف جنس کې نه متحقق کیږی. وَلِلشَّافِعِيِّ د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې. أَنَّهُمَا اتَّحَدَا جِنْسًا مِنْ حَيْثُ الْمَالِيَّةُ. چې مستثنی او مستثنی منه دواړه د مالیت د جنس نه یو جنس دي.

تشریح: که یوسړې د دراهمو او دنانیرو نه د کیلی یا وزنی یا د غیر متفاوت عدد څیزونو استثناء اوکړی.مثلاً داسې اووائی. ﴿له علیّ مأة درهم إلا قفیز برّ او إلا مأة جوز﴾ نو د شیخینو رحمهما الله په نیز د استحسان په طریقه صحیح ده.اوکه ددې څیزونو نه علاوه د بل څه شی اقرار اوکړی.مثلاً داسې اووائی. ﴿له علیّ مأة درهم إلا ثوبا او شاة او دارا﴾ نو استثناء صحیح نه ده.د امام محمد اوامام زفر رحمهما الله په نیز دواړو صورتونو کې صحیح نه ده.د قیاس تقاضا هم داده.د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله په نیز دواړو صورتونو کې صحیح ده.د امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه استثناء هغې ته وائی.که دا نه وی.نو مستثنی په مستثنی منه کې داخل وی.اودا شی د خلاف جنس په صورت کې نشی کیدلې.په دې وجه د دراهمو او دنانیرو نه ددې د غیر استثناء صحیح نه ده.امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه ددې نه د کیلی شی استثناء وی.یا د غیرکیلی شی استثناء وی.په دواړو صورتونو کې مستثنی او مستثنی منه د مالیت په اعتبار سره یو جنس دې.نو استثناء صحیح ده.شیخین رحمهما الله فرمائی.چه کیلی ، وزنی ، معدوده مذکور دراهم او دنانیر اگرچه صورةً مختلف اجناس دی.خو معنی یو جنس دې.خکه چې دا واړه ثمن کیدلو سره په ذمه کې ثابتیږی.نو ددې استثناء صحیح ده.په خلاف د غیرکیلی یعنی د ثوب، شاة (چیلۍ) ، دار وغیره، چې ددې مالیت معلوم نه دې.خکه چې دا شیان فی نفسه د قیمت په لحاظ سره متفاوت وی.نو ددې استثناء سره د معلوم نه د مجهول استثناء لازمیږی.اودا جائز نه ده.

فائده: صاحب د کافی لیکلی دی.چه زموږ او د امام شافعی رحمه الله په منځ کې مذکوره اختلاف د استثناء د عمل په کیفیت کې اختلاف باندې مبنی دې.او هغه داچه د امام شافعی رحمه الله په نیز استثناء مانع د حکم په طریقې د معارضې وی.ددې مطلب دادې.چه مستثنی کې د حکم ثبوت ممتنع کیدل د معارض دلیل په وجه دی.نود مقر د کلام ﴿لفلان علیّ عشرة إلا درهما﴾ تقدیر دادې.چه ﴿لفلان علیّ عشرة إلا درهما فإنه لیس علیّ﴾ نود یو درهم نه لازمیدل، هغه دلیل سره دی.کوم چې دده د پیل کلام سره معارض دې.خکه چې د استثناء نه روسته داسې شوه.لکه چې ده د سره تکلم هم نه وی کړې.خکه چې د اهل لغت په دې باندې اتفاق دې.چه نفی نه استثناء اثبات وی.او اثبات نه استثناء نفی وی.او بله داچه کلمهٔ شهادت بالاتفاق کلمهٔ توحید ده.اوس که استثناء لپاره داسې حکم نه وی.کوم حکم چې د پیل خلاف وی.نو کلمهٔ شهادت به دنفی د شرکت لپاره وی.د کلمهٔ توحید لپاره به نه وی.ددې اصولو په لحاظ سره دوی فرمائی.چه معارض دلیل باندې حتی الامکان عمل کول ضروری دی.او هغه دلته کې په حیثیت د مالیت او مجانست کیدلو په وجه ممکن دې.

او زموږ په نیز استثناء د مستثنی په اندازه د تکلم بالحکم نه مانع وی.او داسې کیږی.چه گویا ده د مستثنی د ما وراء تکلم کړې دې.او په مستثنی مقدار کې دده کلام د ایجاب کیدلو نه خارجیږی.په وجه د قول د الله تعالی ﴿فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا﴾ او د معارض دلیل په وجه د حکم د ثبوت امتناع ایجاب کې کیږی.اخبار کې نه کیږی.دلته د ټولو اهل لغت په دې اتفاق دې.چه استثناء د استخراج او د تکلم بالباته نوم دې.نو موږ په دواړو قولونو کې تطبیق ورکوو.او وایو.چه استثناء پخپلې وضع سره استخراج او تکلم بالباته ده.او بالاشاره اثبات او نفی ده.او په کلمهٔ توحید کې اثبات اشارةً او نفی قصداً اختیار کړې شوې دې.خکه چې نفی اصل مقصود ده.خکه چې کافرانو ته د الله تعالی اقرار وو.خو هغوی دده سره غیر

شریکان کول.قال الله تعالی ﴿وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُولُنَّ اللّٰهُ﴾

**وَلَهُمَا** شیخینو رحمهما الله دلیل دادی.**أَنَّ الْمُجَانَسَةَ فِي الْأَوَّلِ ثَابِتَةٌ مِنْ حَيْثُ الثَّمَنِيَّةِ**، چې اول کې یو جنس کیدل د ثمنیت په لحاظ سره ثابت دی.**وَهٰذَا فِي الدِّينَارِ ظَاهِرٌ**.اودا د دینار په حق کې ښکاره دی.**وَالْمَكِيلُ وَالْمَوْزُونُ أَوْصَافُهَا أَثْمَانٌ**،اود مکیل او موزون اوصاف ثمن دی.پاتې شوه کپړه، **أَمَّا الثَّوْبُ فَلَيْسَ بِثَمَنٍ أَصْلًا**نودا په هیڅ شان ثمن نه دی.**وَلِهٰذَا لَا يَجِبُ بِمُطْلَقِ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ**په دې وجه دا په مطلق عقد معاوضه کې نه واجبیږی.**وَمَا يَكُونُ ثَمَنًا**او کوم شئ چې په ثمن کې وی.**صَلَحَ مُقَدِّرًا بِالدَّرَاهِمِ**هغه د دراهمو په اندازه کې راځی.**فَصَارَ مُسْتَثْنًى مِنَ الدَّرَاهِمِ**،نود دراهمو نه هم ددې په اندازه مستثنی شو**وَمَا لَا يَكُونُ ثَمَنًا**او کوم شئ چې ثمن نشی کیدلې.**لَا يَصْلُحُ مُقَدِّرًا**هغه په اندازه کې نشې راتلې.**فَبَقِيَ الْمُسْتَثْنَى مِنَ الدَّرَاهِمِ مَجْهُولًا**نود دراهمو نه چې کوم شئ مستثنی دی.هغه مجهول پاتې شو.**فَلَا يَصِحُّ**نو استثناء به صحیح نه وی.

**تشریح**: د شیخینو رحمهما الله د دلیل تشریح داده.چه وجه اول ﴿له علیّ مأة درهم إلا دیناراً أو إلا قفیز حنطة﴾ کې مجانست د ثمن په لحاظ سره موجود دې.یعنی سلو درهمو سره یو دینار او یو قفیز غنم ځکه هم جنس دی.چه دواړه ثمن کیدای شی.چه دا د دینارو په حق کې خو بالکل ښکاره ده.پاتې شو مکیل او موزون، نو په دې کې ددې اوصاف ثمن وی.مثلاً غنم یا خو د وصف بیانولو سره معلومیږی.یا دا متعین کیږی.کله چې متعین وی.نودا به مبیع وی.او کله چې ددې وصف بیان کړی.او پخپله ذمه ئې واخلی.نو غیر متعین به په ذمه کې واجب وی.لکه څنګه چې دینار په ذمه واجبیږی.نو غیرمتعین، په ذمه واجبیدلو کې د درهمو او دینارو پشان مکیل او موزون دې.نو په ثمن کیدلو کې یو جنس دې.په خلاف د کپړې، چې دا لکه څنګه په ښکاره ثمن نه دې.دغه ډول په ذمه واجبیدلو کې هم ثمن نه دې.هم دا وجه ده.که د کپړې معاوضه مطلق وی.نو نه واجبیږی.( سوا د عقد سلم نه، چې په دې کې خاص طور باندې په ذمه واجبیږی ) معلومه شوه.چه کپړه کې ثمنیت نشته.او کوم شئ چې ثمن وی.هغه د دراهمو په اندازه کې راتلې شی.مثلاً دینار د دراهمو سره، قفیز غنم دراهمو سره اندازه کړی.اود سلو دراهمو نه دا اندازه مستثنی کړی.او کوم شئ چې ثمن نشی کیدلې.( لکه کپړه) هغه مقدار نشی جوړیدلې.نود مستثنی منه دراهم نه چې کوم شئ مستثنی دې.هغه مجهول پاته پاتې شو.نو استثناء به صحیح نه وی.

## اقرار سره د متصل انشاءالله حکم

**قَالَ** فرمائی.**(وَمَنْ أَقَرَّ بِحَقٍّ)** که یوکس د یو حق اقرار اوکړو.**(وَقَالَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ مُتَّصِلًا) بِإِقْرَارِهِ**او خپل اقرار سره ئې،،انشاءالله،، اوونیل.**(لَمْ يَلْزَمْهُ الْإِقْرَارُ)**نو په ده به اقرار لازم نه وی.**لِأَنَّ الْاِسْتِثْنَاءَ بِمَشِيئَةِ اللّٰهِ إِمَّا إِبْطَالٌ**ځکه چې د الله تعالی رضا سره استثناء کول به یا باطلول وی.**أَوْ تَعْلِيقٌ**،یا معلق کول.**فَإِنْ كَانَ الْأَوَّلَ** که اول وی.**فَقَدْ بَطَلَ**،نوده پخپله ختم کړو.**وَإِنْ كَانَ الثَّانِيَ** اوکه ثانی وی.**فَكَذٰلِكَ**،نو بیا هم دغه ډول ده.**إِمَّا لِأَنَّ الْإِقْرَارَ لَا يَحْتَمِلُ التَّعْلِيقَ بِالشَّرْطِ**،یا خو ځکه چې اقرار د تعلیق بالشرط احتمال نه لری.**أَوْ لِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يُوقَفُ عَلَيْهِ**،یا ځکه چې مشیت داسې شرط دې.چه دې باندې وقوف نشی کیدې.**كَمَا ذَكَرْنَا فِي الطَّلَاقِ**،لکه څنګه چې موږ په طلاق کې ذکر کړی دی

**تشریح**: د مسئلې د تشریح نه وړاندې د مبسوط یو مضمون ذکر کول مناسب معلومیږی.کوم چې دده د کتاب الاقرار نه وړاندې باب کې لیکلې دې.او هغه دادې.که یوکس دا اووائی.چه ﴿غضبت هذا العبد امس انشاءالله﴾ نو په ده به هیڅ هم لازم نه وی.خود استحسان په طریقه، د قیاس تقاضا هم داده.چه دده استثناء باطلول بکار دی.ځکه چې داستثناء ذکرکول، د شرط ذکر کاوه په درجه کې وی.اودا خبره په ان شاءآت کې صحیح کیدای شی.په اخبارات کې نه صحیح کیږی.وجه د استحسان داده.چه استثناء کلام د عزیمت کیدلو نه خارجوی.دا نه چې هغه د شرط په معنی کې کیږی.لکه چې د حضرت موسی علیه السلام په اړه کې د الله تعالی



ارشاد دې.﴿سَتَجِدُنِي إِنْ شَاءَ اللّٰهُ مِنَ الصَّابِرِينَ﴾ اودا معلومه ده.چه هغوی صبر اونکړې شو.،، په دې باندې په هغوی څه عتاب هم اونشو.حالانکه د انبیاء کرام علیهم السلام د اړخه وعده هم داسې وی.لکه د غیر انبیاؤ د اړخه عهد وپیمان، ددې نه ملعومه شوه.چه استثناء کلام د عزیمت کیدلو نه خارجوی.﴿وقد قال ﷺ ،،من استثنی فله ثنیاه،،﴾ او اقرار هم داسې کلام سره ملزم کیږی.کوم چې عزیمت وی.خو استثناء هغه وخت فائده ورکوی.کله چې یو ځائې ( متصل) وی.ځکه چې جلا جلا استثناء د فسخ او تبدیل په درجه کې ده.او مقر بخپل اقرار کې ددې مالك نه وی.نو په استثناء مفصول کې به هم ددې مالك نه وی.بیا دا د اقرار نه د رجوع کاوه خلاف دی.چه د اقرار نه رجوع نه صحیح کیږی.اګرچه یو ځائې وی.ځکه چې اقرار نه رجوع کول، د هغه شئ نفی کوی.کوم ئې چې وړاندې ثابت کړې دې.نودا به دده د اړخه تناقض وی.او تناقض نه صحیح کیږی.که موصول وی.اوکه مفصول وی.په خلاف د استثناء.چې دا د تفسیر او تغیر بیان وی.چه دا صرف موصولاً صحیح کیږی.مفصولاً نه صحیح کیږی.

[1] ددې مضمون ساتلو نه روسته اوس کتاب اړخ ته راشئ.مسئله داده.چه یو سړی د یو حق اقرار اوکړو.او ور سره ئې انشاء هم اوونیله.نو په ده به اقرار لازم نه وی.ځکه چې د الله تعالی د مشیئت ( رضا) استثناء یا خو حکم دده د منعقد کیدلو نه وړاندې باطلولو لپاره دې.لکه څنګه چې د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دې.یا د معلق کاوه لپاره دې.لکه څنګه چې د امام محمد رحمه الله مذهب دې.

[1] قاضی خان د جامع کبیر په کتاب الطلاق کې اختلاف هم داسې ذکرکړې دې.او بعضو اختلاف ددې په عکس ذکر کړې دې.لکه څنګه چې د فتاوی صغری په کتاب الطلاق او تتمه کې ذکر دی.ددې اختلاف نتیجه به په دې صورت کې ښکاره کیږی.کله چې مشیئت د الله تعالی مقدم کړی ، او داسې اووائی.چه،، انشاء الله انت طالق،، چې د کومو خلګو په نیز انشاء الله د باطلولو لپاره ده.د هغوی په نیز به طلاق نه واقع کیږی.اود کومو په نیز چې دمعلق کیدلو لپاره ده.د هغوی په نیز به طلاق واقع کیږی ) بهرحال چې څه هم وی.اقرار به لازم نه وی.که د حکم باطلولو لپاره وی.بیا خو دهیڅ ونیلو اړتیا نشته.ځکه چې هغه پخپله باطل کړو.که دتعلیق لپاره وی.نودا هم باطل دې.ځکه چې اقرار د خبر کیدلو په وجه د معلق کیدلو احتمال نه لری.ځکه چې اقرار د تیرشوی خبر ورکول دی.او تعلیق د راروان په لحاظ سره وی.او په دې دواړو کې تضاد دی.ځکه چې د الله تعالی د مشیئت ( غوښتل) شرط داسې دې. چې دې باندې وقوف نشی کیدلې.

**بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ** په خلاف ددې کله چې ده اوونیل.**لِفُلَانٍ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ** چې د فلانی په ما باندې سل درهم دی.**إِذَا مِتُّ** کله چې زه مړ شم.**أَوْ إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ** یا کله چې میاشت پیل شی.**أَوْ إِذَا أَفْطَرَ النَّاسُ** یا کله چې خلګ افطار اوکړی.**لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى بَيَانِ الْمُدَّةِ** ځکه چې دا د مودې د بیان په معنی کې دې.**فَيَكُونُ تَأْجِيلًا لَا تَعْلِيقًا**، معلق کول نه دی.**حَتّٰى لَوْ كَذَّبَهُ الْمُقَرُّ لَهُ فِي الْأَجَلِ** تردې که مقرله په مقرر وخت کې دې دروغجن کړو.**يَكُونُ الْمَالُ حَالًّا** نو مال به فی الفور واجب وی.

[1] یعنی نامعلوم شرط سره تعلیق باطل دې.لکه څنګه چې پورته ذکرشو.اوکه تعلیق معلوم شرط سره وی.نو دا صحیح ده.مثلاً یوکس اوونیل.چه ما باندې دفلانی سل درهم دی.کله چې زه مړ شم.یا کله چې میاشت پیل شی.یا کله چې مسلمانان خلګ د روژو نه فارغ شی.یعنی د اختر ورځ وی.نو په دې صورت کې به تعلیق صحیح وی.وجه د صحت داده.چه په دې صورتونو کې تعلیق نشته.بلکه د عرف په لحاظ ئې موده متعین کړې ده. ګویا مقر د مال په ادا کاوه کې د مقرله د اړخه د دومره مهلت موندلو مدعی دې.تردې که چرې په موده کې مقرله، مقر دروغجن کړو.نو مذکوره مال به فی الحال واجب وی.او موده به نه ثابتیږی.

## د کور په اقرار کښې د عمارت د استثناء حکم

**قَالَ (وَمَنْ أَقَرَّ بِدَارٍ)** چا چې اقرار اوکړو.د دار، **(وَاسْتَثْنَى بِنَاءَهَا لِنَفْسِهِ)** او د هغې د عمارت استثناء ئې اوکړله

خپل خان دپاره، فَلِلْمُقَرِّلَهُ الدَّارُوَالْبِنَاءُ نو دار او عمارت به د مقرله وي. لِأَنَّ الْبِنَاءَ دَاخِلٌ فِي هَذَا الْإِقْرَارِ مَعْنًى خکه چې په دې اقرار کي معنی عمارت داخل دې. لَا لَفْظًا، لفظاً داخل نه دې. وَالِاسْتِثْنَاءُ تَصَرُّفٌ فِي الْمَلْفُوظِ، حالانکه استثناء تصرف وي.په ملفوظ کي،

**تشريح:** مقر ديوکس لپاره د دار اقرار اوکړو.او ددې دعمارت استثناء ئې اوکړله.نو دار او عمارت دواړه به د مقرله لپاره وي.خکه چې ابادی او عمارت خو په دې اقرار کي د معنی په اعتبار سره تبعاً داخل دې.داسې نه چې په اعتبار د لفظ يعني د لفظ نه مقصود کيدلو سره داخل دې .وجه داده.چه لفظ د دار د زمکې او عمارت د دواړو نوم نه دې.بلکه صرف د زمکې نوم دې.البته که په دې کي عمارت وي.نو هغه هم شامليږي.خو مقصوداً نه بلکه تبعاً داخليږي.خکه چې بناء په دار کي يو وصف دې.او وصف تبعاً داخليږي.قصداً نه داخليږي.

ددې دليل دادې.که د دار په بيع کي د قبضې نه وړاندې د بناء او عمارت څوك مستحق راوُخي.نو د هغې په مقابله کي ثمن هيڅ هم نه کميږي.بلکه مشتري ته اختيار ورکولې شي.اوهرکله چې لفظ د دار عمارت ته لفظاً نه شي.نو استثناء به هم صحيح نه وي.خکه چې استثناء خو په ملفوظ کي تصرف وي.حاصل داچه کوم لفظ مستثنی منه دې.هغه چې د لفظ په اعتبار سره کومو څيزونو ته ګډ وي.کله چې په دغه څيزونو کي د کوم شي استثناء اوکړي.نو صحيح به وي.او کومو څيزونو ته چې د معنی په اعتبار سره شامل وي.د هغې استثناء به صحيح نه وي.

وَالْفَصُّ فِي الْخَاتَمِ او په ګتمه کي غمې، وَالنَّخْلَةُ فِي الْبُسْتَانِ او په باغ کي د کجورې ونه، نَظِيرُ الْبِنَاءِ فِي الدَّارِ په کور کي د عمارت مثالونه دی. لِأَنَّهُ يَدْخُلُ فِيهِ تَبَعًا خکه چې مستثنی په مستثنی منه کي تبعاً داخل ده لَا لَفْظًا، لفظاً داخل نه ده.

**تشريح:** د ګتمې نه د غمی استثناء او په باغ کي د کجورې د ونې استثناء په دار کي د عمارت د استثناء مثالونه دی.لکه څنګه چې د دار په اقرار کي د عمارت استثناء صحيح نه ده.هم دغه ډول د ګتمې په اقرار کي د غمې استثناء، اود باغ په اقرار کي د ونې استثناء صحيح نه ده.خکه چې لکه څنګه په دار کي عمارت تبعاً داخل دې.لفظاً داخل نه دې.هم دغه ډول په ګتمه کي غمې او په باغ کي ونه تبعاً داخل ده.لفظاً داخل نه ده.

سوال: د علامه مرغيناني رحمه الله دا قول «لأنه (أي الفص) يدخل فيه تبعاً لا لفظا» د تير شوی قول «إسم الخاتم يشمل الكل» منافی دې؟

خواب: په تير شوی قول کي د خاتم نوم په شمول سره عام مراد دې.که قصدی وي.اوکه تبعی وي.او دلته د دخول قصدی نفی مراد ده.، فلا منافاة.،

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ په خلاف ددې کله چې اووائی. إِلَّا ثُلُثَهَا چې سوا د دريمه برخه کور، أَوْ إِلَّا بَيْتًا مِنْهَا يا سوا ددې د يوې کمرې، لِأَنَّهُ دَاخِلٌ فِيهِ لَفْظًا خکه چې دا په دې کي لفظاً داخل دې.

**تشريح:** که مقر دا اووئيل.چه دا دار د فلانی دې.سوا ددې د دريمې برخې (حصې) نه،يا سوا ددې د يوې کمرې نه،چه دازما ملك دې.نواستثناء صحيح ده.خکه چې ثلث داراوبيت،دلفظ،،دار،، لاندې مقصوداً داخليږي.ترڅو که چرې د دار په بيع کي د بيت استحقاق راوُخي.نو ددې په مقابله کي ثمن ساقطيږي. «كذا قالوا ولكن كون البيت داخلاً في الدار لفظاً و مقصوداً مشكل على القول فإن الدار إسم العرصة كما ذكروه في كتاب الأيمان» (اه نتائج ۱۲)

### د کور د صحن په اقرار کښې د عمارت د استثناء حکم

وَلَوْقَالَ وکه وې وئيل بِنَاءُ هَذِهِ الدَّارِلِي چې ددې دار عمارت زما دې. وَالْعَرْصَةُ لِفُلَانٍ وانګنړ (صحن) د



فلانی ده. فَهُوَكَمَا قَالَ نودا دده وئيلو سره موافق ده. لِأَنَّ الْعَرْصَةَ عِبَارَةٌ عَنِ الْبُقْعَةِ دُونَ الْبِنَاءِ خکه چې عرصه د خالی زمکې نه عبارت دې.د عمارت نه بغير، فَكَأَنَّهُ قَالَ نو لکه چې ده داسې اووئيل. بَيَاضُ هَذِهِ الْأَرْضِ دُونَ الْبِنَاءِ لِفُلَانٍ، چې مځکه د فلانی ده.د عمارت نه بغير، بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ مَكَانَ الْعَرْصَةِ أَرْضًا په خلاف ددې کله چې ده د غولې (صحن) په ځائې ارض (مځکه) اووئيل. حَيْثُ يَكُونُ الْبِنَاءُ لِلْمُقَرِّلَهُ نو عمارت به هم د مقرله وي. لِأَنَّ الْإِقْرَارَ بِالْأَرْضِ إِقْرَارٌ بِالْبِنَاءِ خکه چې د زمکې اقرارکول د عمارت هم اقرار کول دی. كَالْإِقْرَارِ بِالدَّارِ لکه د دار اقرار کول.

**تشريح:** صاحب د ذخيره ليکلی دی.چه دلته کي پنځه مسئلې دی.چه ددې تخريج په دوې (دوه) اصولو باندې دې.

① رومبې اصل: دادې.چه د اقرار نه وړاندې دعوه کول، د روسته د اقرار صحت لپاره مانع نه وي.اود اقرار نه روسته دهغه شي د بعض دعوه کول،کوم چې د اقرار لاندې داخل شوې وي.نه صحيح کيږي.

② دوهم اصل دادې.چه د سړی اقرار پخپله خپل ذات باندې دليل دې.غير باندې دليل نه دې.هرکله چې دا اصول معلوم شو.نو اوس د هرې مسئلې حکم اوګوره.

| نمبرشمار | صورت د مسئلې | حکم |
| --- | --- | --- |
| ① | بناء هذه الدار و أرضها لفلان | مځکه او بناء دواړه به د فلانی لپاره وي. |
| ② | أرضها لي و بناءها لفلان | د مقر د اقرار مطابق به وي. |
| ③ | أرض هذه الدار لفلان و بناء ها لي | مځکه او عمارت دواړه به د مقرله لپاره وي. |
| ④ | أرض هذه الدار لفلان و بناء ها لفلان آخر | مځکه او عمارت دواړه به د رومبی مقرله لپاره وي. |
| ⑤ | بناء هذه الدار لفلان و أرضها لفلان آخر | د مقر د اقرار مطابق به وي. |

### د مقرله د غلام په عوض کښې د زر درهمو د اقرار حکم

وَلَوْقَالَ که وې وئيل. لَهُ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ چې د فلانی په ما باندې زر درهم دی. مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ اشْتَرَيْتُهُ مِنْهُ د هغه غلام د ثمن کوم چې ما د هغه نه اخستې وو. وَلَمْ أَقْبِضْهُ او په هغې مې قبضه نه وه کړې. فَإِنْ ذَكَرَ عَبْدًا بِعَيْنِهِ نو که هغه متعين غلام ذکرکړی. قِيلَ لِلْمُقَرِّلَهُ نو مقرله ته به وئيلې شی. إِنْ شِئْتَ فَسَلِّمِ الْعَبْدَ که غواړې.نو غلام ورکړه. وَخُذِ الْأَلْفَ او زر درهم واخله. وَإِلَّا فَلَا شَيْءَ لَكَ) ګنی ستا لپاره هيڅ نشته.

**تشريح:** زيد اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی زر درهم دی.د هغه غلام د قيمت،چه هغې باندې ما تر اوسه پورې قبضه نه ده کړې.ددې يو څو صورتونه دی. ① مقر غلام متعين کړو.او مقرله دده تصديق اوکړو.غلام ئې ده ته حواله کړو.دا صورت په کتاب کي ذکر دې.ددې حکم دادې.چه مقر باندې به زر درهم لازم وې.خکه چې کوم شئ د مقر او مقرله پخل منځ کي رضامندئ سره ثابت شی.هغه داسې وی.لکه چې معائنة ثابت شوې وی.اودا خبره ښکاره ده.که دوی دواړو ددې معائنه کړې وه.چه مقر سړی دده نه دا غلام په زر درهم اخستې دې.حالانکه دا غلام دده په قبضه کي دې.نو په ده به زر درهم لازم وو.دغه ډول به دلته کي هم لازم دی.

قَالَ: علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی. وَهَذَا عَلَى وُجُوهٍ: چې ددې يو څو صورتونه دی. أَحَدُهَا هَذَا وَهُوَ أَنْ يُصَدِّقَهُ يو هم دادې.چه مقر له دده تصديق اوکړی. وَيُسَلِّمَ الْعَبْدَ،غلام اوسپاری. وَجَوَابُهُ مَا ذُكِرَ،ددې حکم هم هغه دې.کوم چې مونږ ذکرکړې دې. لِأَنَّ الثَّابِتَ بِتَصَادُقِهِمَا خکه چې کوم ددوی خپل منځ کي تصديق سره ثابت شی. كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً کوېا هغه معائنه سره ثابت دې.

په دې عبارت سره د سوال مقدر خواب دې.په دې باندې سعدی چلپی دا اعتراض کړې دې.چه هرکله هغه

غلام اوسپارلو.نو بيا به هغه ته دا ځنګه ونيلي شي.چه ﴿إن شئت فسلم العبد...... ﴾ نو ښكاره شوه.چه علامه مرغيناني رحمه الله له پكار وو.چه په ﴿وهو ان يصدقه﴾ ئې اكتفاء كړې وه؟

خواب*دادې.چه د موصوف رحمه الله په كلام كې ﴿ويسلم العبد...... ﴾ په معنى د سلمه اليه نه دي.بلكه په سلمه له سره دي.په معنى د ،،جعله سالماً له،، او دا خبره موږ د خپل اړخه نه وايو.بلكه صاحب دهدايه رحمه الله دا لفظ هم په دې كتاب كې څو ځله هم په دې معنى كې استعمال كړې دې.لكه په،، باب الصلح في الدين،، كې د،، دين مشترك،، والا فصل لاندې به راشي.چه ﴿فلو سلم له ما قبض ثم توى ما على الغريم له ان يشارك القابض لانه رضي بالتسليم ليسلم له ما في ذمة الغريم ولم يسلم﴾ اودا ښكاره ده.چه مقر لپاره د غلام سلامت كيدل به هغه وخت وي.كله چې مقرله ددې اقرار اوكړي.چه غلام هم ستا دې.زما نه دې.او ددې ثبوت مقر ته د غلام سپارلو نه وړاندې هم كيداې شي.نو ذكرشوې قول د ﴿إن شئت فسلم العبد...... ﴾ منافي نه دې.او كه لفظ د ،،يسلم،، د سلامة ثلاثي نه اومنلې شي.د تسليم نه او نه منلې شي.او العبد فاعل جوړ كړې شي.مفعول نه،نو په دې صورت كې د منافات وهم هم نشي كيدې.(نتائج)

## د مقر په جواب كښې د مقرله د بل غلام خرڅولو اقراركولو حكم

وَالثَّانِي أَنْ يَقُولَ الْمُقَرُّ لَهُ:دوهم دا چې مقرله اووائي.الْعَبْدُ عَبْدُكَ چې دا غلام خو ستا دې.مَا بِعْتُكَهُ ما دا ستا په لاس نه دې خرڅ كړې.وَإِنَّمَا بِعْتُكَ عَبْدًا غَيْرَ هٰذَا بلكه ددې نه علاوه بل غلام مې خرڅ كړې وو.وَفِيهِ الْمَالُ لَازِمٌ عَلَى الْمُقِرِّ په دې صورت كې به په مقر مال لازم وي.لِإِقْرَارِهِ بِهِ عِنْدَ سَلَامَةِ الْعَبْدِ لَهُ ځكه چې ده د غلام اقرار كړې دې.مقرله لپاره ددې د سلامت كيدلو په حالت كې ، وَقَدْ سَلِمَ او هغه ئې سپارلې وي.فَلَا يُبَالِي بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ بَعْدَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ.نود مقصد حاصليدلو نه روسته د سبب د اختلاف به هيڅ پرواه نه كيږي.

تشريح: ② مقرله د مقر په خواب كې اوونيل.چه دا غلام خو ستا دې. ما دا غلام ستا په لاس نه دې خرڅ كړې.بلكه بل يو غلام مې خرڅ كړې وو.چه هغه ما تاته حواله كړې هم دې.په دې صورت كې به هم مقر باندې مال لازم وي.ځكه چې هغه د مال اقرار كړې دې.او غلام صحيح سلامت موجود هم دې.نود مقصود حاصليدلو يعنى د غلام د سلامتيا نه روسته د سبب د اختلاف هيڅ اعتبار نه كيږي.ځكه چې اسباب بعينه مطلوب نه وي.بلكه د احكامو په وجه مطلوب وي.نود اصل مال په وجوب باندې د اتفاق نه روسته د سبب د اختلاف هيڅ حيثيت نه پاتې كيږي.دا داسې شوه.لكه چې مقر دا اووائي.چه ستا ما باندې يو زر دي.كوم چې ما ستا نه غصب (په زبردستئ اخستې) وي.او مقرله دا اووائي.چه نا بلكه تا زما نه پور اخستې وي.بيا په دې صورت كې مذكوره غلام د مقر په قبضه كې وي.يا د مقرله په قبضه كې وي.هيڅ توپير نشته.

وَالثَّالِثُ أَنْ يَقُولَ دريم داچه مقرله اووائي.الْعَبْدُ عَبْدِي چې دا غلام خو زما دې.مَا بِعْتُكَ.ما ستا په لاس نه وو خرڅ كړې. وَحُكْمُهُ أَنْ لَا يَلْزَمَ الْمُقِرَّ شَيْءٌ ددې حكم دادې.چه د مقر په لاس به هيڅ لازم نه وي.لِأَنَّهُ مَا أَقَرَّ بِالْمَالِ إِلَّا عِوَضًا عَنِ الْعَبْدِ ځكه چې ده د مال اقرار نه دې كړې.خود غلام په عوض كې .فَلَا يَلْزَمُهُ دُونَهُ.نو ددې نه بغير به په ده باندې هيڅ لازم نه وي.وَلَوْ قَالَ مَعَ ذٰلِكَ او كه مقرله ددې سره دا هم اوونيل.إِنَّمَا بِعْتُكَ غَيْرَهُ چې ما ستا په لاس دوهم غلام خرڅ كړې وو.يَتَحَالَفَانِ نو دواړه به خپل منځ كې قسم خوري.لِأَنَّ الْمُقِرَّ يَدَّعِي تَسْلِيمَ مَنْ عَيَّنَهُ ځكه چې مقر ددې مدعي دې.چه مقرله باندې متعين غلام سپارل واجب دي.وَالْآخَرُ يُنْكِرُ او مقرله ددې منكر دې.وَالْمُقَرُّ لَهُ يَدَّعِي عَلَيْهِ الْأَلْفَ بِبَيْعِ غَيْرِهِ او مقرله مقر باندې د زر (درهمو) مدعي دې.د دوهم غلام د خرڅول په سبب،وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ،حالانكه مقر ددې منكر دې.وَإِذَا تَحَالَفَا نو هركله چې دوى خپل منځ كې قسم اوخوري.بَطَلَ الْمَالُ،نو مال به باطل وي.

تشريح: ③ مقرله مقر ته اووائي.چه دا خو زما غلام دې.ما ستا په لاس نه وو خرڅ كړې.په دې صورت كې به مقر باندې مال لازم نه وي.ځكه چې ده دكوم مال اقرار كړې دې.هغه ئې د غلام په بدله كې كړې دې.نود



غلام نه بغير به مال نه لازميږي.

④ ...... مقرله مقر ته اوونيل.چه دا غلام زما دې.ما دا ستا په لاس نه دې خرڅ كړې.بلكه بل يو غلام مې خرڅ كړې وو.نو په دې صورت كې به دواړه قسم خوري.اود قسم نه روسته به مال باطليږي.او غلام چې دكوم كس په قبضه كې وي.هم د هغه به وي.ځكه چې دلته په دوى كې هر يو مدعي هم دې.او منكر هم دې.مقر په مقرله باندې ددې غلام د سپارلو مدعي دې.كوم چې ده متعين كړې دې.او مقرله ددې منكر دې.او مقرله په مقر باندې د دوهم غلام د بيع د عوض مدعي دې.او مقر ددې منكر دې.نو دواړه به قسم خوري.

هٰذَا إِذَا ذَكَرَ عَبْدًا بِعَيْنِهِ اودا واړه هغه وخت دي.كله چې ده متعين غلام ذكر كړې وي.(وَإِنْ قَالَ) او كه ده دا اوونيل.مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ اشْتَرَيْتُهُ چې د يو غلام ثمن دې.وَلَمْ يُعَيِّنْهُ و غلام ئې متعين نكړو.لَزِمَهُ الْأَلْفُ نو په ده به زر (درهم) لازم وي.وَلَا يُصَدَّقُ فِي قَوْلِهِ او دده خبره به نه منلې كيږي.مَا قَبَضْتُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] چه ما قبضه كړې نه وو.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَصَلَ أَمْ فَصَلَ) كه يو ځاې (متصل) ئې اووائي.او كه جلا (منفصل) ئې اووائي.لِأَنَّهُ رُجُوعٌ ځكه چې دا رجوع كول دي.فَإِنَّهُ أَقَرَّ بِوُجُوبِ الْمَالِ ځكه چې ده د مال واجبيدلو اقرار كړې دي.رُجُوعًا إِلَى كَلِمَةِ عَلَى ،كلمه،،على ،، اړخ ته رجوع كاوه سره.وَإِنْكَارُهُ الْقَبْضَ فِي غَيْرِ الْمُعَيَّنِ يُنَافِي الْوُجُوبَ أَصْلًا او په غيرمعين كې د قبضې انكار د سره د وجوب منافي دې.لِأَنَّ الْجَهَالَةَ مُقَارِنَةً كَانَتْ أَوْ طَارِئَةً ځكه چې د مبيع مجهول كيدل، كه مقارن بالعقد وي.يا روسته پيدا شوې وي.بِأَنِ اشْتَرَى عَبْدًا په دې طريقه چې يو غلام ئې واخستلو.ثُمَّ نَسِيَاهُ عِنْدَ الِاخْتِلَاطِ بِأَمْثَالِهِ بيا دوی د هغه شناخت هير كړو.د دوهم غلام ملاويدلو په وخت، تُوجِبُ هَلَاكَ الْمَبِيعِ نو هركله چې دمبيع ضائع كيدل دي.فَيَمْتَنِعُ وُجُوبُ نَقْدِ الثَّمَنِ نود ثمن اداء كول به ممتنع وي.وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ او هركله چې داسې خبره ده.كَانَ رُجُوعًا نودا د اقرار نه رجوع شوه.فَلَا يَصِحُّ نو صحيح به نه وي.وَإِنْ كَانَ مَوْصُولًا اګرچه موصولا وي.

تشريح: مذكوره څلور واړه صورتونه هغه وخت دي.كله چې مقر غلام متعين كړې وي.كه ده متعين كړې نه وي.نود امام ابوحنيفه، امام زفر، اود حسن بن زياد رحمهم الله په نيز به په مقر باندې زر درهم لازم وي.او دده دې وئيلو (چې ما تر اوسه په دې باندې قبضه نه ده كړې) ته به توجه نشي وركولې.كه ده دا متصلاً وئيلي وي.او كه منفصلاً وئيلې وي.ځكه چې دده دا وئيل د اقرار نه رجوع كول دي.ځكه چې ده كلمه د،،على،، استعمالولو سره د مال واجبيدلو اقرار كړې دې.اود غيرمتعين غلام په صورت كې دده د قبضې نه انكار كول، بالكليه د وجوب منافي دي.يعنى كه غيرمعين مبيع باندې قبضه نه وي.نود سره ثمن نه واجبيږي.ځكه چې د مبيع مجهول كيدل،ددې ضائع كيدل واجبوي.كه د مبيع جهالت دعقد مقارن وي.لكه څنګه چې د مجهول غلام اخستلو په صورت كې كيږي.يا ددې نه روسته پيدا شوې وي.لكه اخستلې شوې غلام نورو غلامانو كې ملاؤ شو.(او ګډ وډ شو).او متعاقدينو دده شناخت هير كړو.بهرحال داسې جهالت مبيع د مستهلك (ضائع كيدلو) په مرتبه كې كوي.ځكه لكه څنګه چې د مستهلك حواله كول ناممكن دي.دغه ډول مجهول سپارل هم نا ممكن دي.نودا د ثمن د وجوب نه مانع وي.نود مقر په غير معين غلام كې د قبضه كاوه نه د انكار نتيجه داده.چه ثمن د سره واجب نشو.حالانكه ده پخپل ځان باندې د وجوب اقرار كړې دې.نودا د اقرار نه رجوع كول شو.اود اقرار نه رجوع كول باطل دي.كه موصولا وي.او كه مفصولا وي.

[1] القول الراجح هو قول الإمام كذا في الدرالمنتقى (۴۱۰۱۳) وكنز (ص،۲۸۹) وملتقى الأبحر(۴۱۰۱۳) والبحرالرائق (۲۵۳۱۷) والدرالمختار(۵۱۲۱۴) نقلاً عن القول الراجح (۲۰۱۱۲)

تنبیه: په زیر بحث مسئله کې د امام ابوحنیفه رحمه الله د اړخه مذکوره تعلیل، د استثناء بالمشیت په لحاظ سره باعث اشکال ده.چه په دې کې بالاتفاق مقر باندې څه لازم نشو.حالانکه مذکوره تعلیل په دې کې جاري کیداې شی.په دې طریقه چې دده د کلام پیل د مال د وجوب اقرار دې.او آخر د کلام د وجوب منافي دې.نودا هم رجوع کیدل پکار دی. ﴿و یمکن أن یجاب عنه بما أشار إلیه المصنف فیما سیأتي بقوله ذالك تعلیق و هذا إبطال﴾.

**د صاحبینو او ائمه ثلاثه رحمهم الله اقوال او دلائل**

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ: احبین رحمهما الله فرمائي.اِنْ وَصَلَ که یو ځائې (متصل) ئې اوونیل.صُدِّقَ نو تصدیق کولې شی.وَلَمْ يَلْزَمْهُ شَيْءٌ،او هیڅ به لازم نه وی.وَاِنْ فَصَلَ اوکه جدا (منفصل) اووائی.لَمْ يُصَدَّقْ نو تصدیق به نه کیږي.اِذَا أَنْكَرَ الْمُقَرُّلَهُ أَنْ كَوْنَ ذٰلِكَ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ،کله چې مقرله د غلام د ثمن کیدلو انکار کوی.او که مقرله ددې اقرار اوکړو.أَنَّهُ بَاعَهُ مَتَاعًا چې دده په لاس ئې څه اسباب (سامان) خرڅ کړې وو.فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُقِرِّ.نود مقر قول به معتبر وی.

تشریح: صاحبین او آئمه ثلاثه رحمهم الله فرمائی.که ده متصلاً ونیلی وی.بیا به خو دده تصدیق کولې شی.او مال به نه لازمیږي.کنی تصدیق به نه کیږي.البته که مقرله د وجوب په سبب کې دده تصدیق اوکړی.او دې صورت کې به هم دمقر تصدیق کولې شی.اوکه مقرله په جهت د وجوب کې د مقر تصدیق اوکړو.په دې طریقه چې ده آوونیل.ما دده په لاس اسباب (غلام وغیره) خرڅ کړې وو.اود مبیع د قبضې په انکار کې ئې دروغجن کړو.نود مقر قول به قبلولې شی.که موصول وی.او که مفصول وی.

وَوَجْهُ ذٰلِكَ او وجه ددې داده.أَنَّهُ أَقَرَّ بِوُجُوْبِ الْمَالِ عَلَيْهِ چې ده په ځان باندې د مال واجبیدلو اقرار کړې دې.وَبَيَّنَ سَبَبًا او یو سبب ئې بیان کړې دې.وَهُوَ الْبَيْعُ،او هغه بیع ده.فَاِنْ وَافَقَهُ الطَّالِبُ فِي السَّبَبِ نو که مقرله په سبب کې دده موافقت اوکړو.وَبِهٖ لَا يَتَأَكَّدُ الْوُجُوْبُ اِلَّا بِالْقَبْضِ،حالانکه صرف په بیع سره وجوب نه متاکد کیږي.د قبضې نه بغیر، وَالْمُقِرُّ يُنْكِرُهُ او مقر د قبضې نه منکر دې.فَيَكُوْنُ الْقَوْلُ لَهُ،نود مقر قول به معتبر وی.وَاِنْ كَذَّبَهُ فِي السَّبَبِ اوکه مقر له په سبب کې دې دروغجن کړو.كَانَ هٰذَا مِنَ الْمُقِرِّ بَيَانًا مُغَيِّرًا نودا به د مقر د اړخه مغیر بیان وی.لِأَنَّ صَدْرَ كَلَامِهٖ لِلْوُجُوْبِ مُطْلَقًا ځکه چې دده د کلام شروع، علی الاطلاق وجوب لپاره دې.وَآخِرُهُ يَحْتَمِلُ انْتِفَاءَهُ او آخر د کلام انتفاء د وجوب ته محتمل دې.عَلٰى اعْتِبَارِ عَدَمِ الْقَبْضِ.د قبضې نه کیدلو تقدیر باندې، وَالْمُغَيِّرُ يَصِحُّ مَوْصُوْلًا لَا مَفْصُوْلًا او مغیر بیان موصولاً صحیح کیږي.مفصولا نه صحیح کیږي.. (وَلَوْ قَالَ) که مقر اوونیل.اِبْتَعْتُ مِنْهُ بَيْعًا چې ما دده نه متعین مال اخستې دې.اِلَّا أَنِّيْ لَمْ أَقْبِضْهُ خو په دې مې قبضه نه وه کړې.فَالْقَوْلُ قَوْلُهٗ) بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع به دده قول معتبر وی.لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ ضَرُوْرَةِ الْبَيْعِ الْقَبْضُ،ځکه چې بیع لپاره قبضه کیدل ضروری نه دی.بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ بِوُجُوْبِ الثَّمَنِ.په خلاف د ثمن د وجوب د اقرار،

تشریح: د صاحبینو رحمهما الله د قول وجه داده.چه مقر له په ،،علی الف،، ونیلو سره خپل ځان باندې د مال د وجوب اقرار کړې دې.او په ﴿من ثمن عبد إشتریته منه﴾ ونیلو سره ئې یو سبب بیان کړې دې.نو که طالب (مقرله) د بیع په سبب کې د مقر موافقت اوکړو.حالانکه صرف د سبب (بیع) په وجود سره د مشتری په ذمه د ثمن وجوب نه متاکد کیږي.(ځکه چې په مبیع د قبضې نه وړاندې د ثمن وجوب شکې وی.تردې که مبیع د بائع په قبضه کې هلاك شی.نود مشتری د ذمې نه ثمن ساقطیږي.بلکه د قبضې په ذریعه متاکد کیږي.د کوم چې مقرله مدعی دې.او مقر منکر دې.نو قول به د منکر (مقر) قبلولې شی.او مقرله په مذکوره سبب کې مقر دروغجن کړو.نود مقر د اړخه به مذکوره بیان، بیان مغیر وی.ځکه چې دده د کلام پیل (له علی الف) نه مطلقاً وجوب ثابتیږي.او په آخر د کلام سره دا احتمال راوځی.چه د عدم قبضه په تقدیر سره وجوب نشته.نودا به د کلام دشروع مقتضی لپاره مغیر وی.او مغیر بیان موصولا صحیح کیږي.مفصولاً نه صحیح کیږي.



قَالَ (وَكَذَا لَوْ قَالَ) دغه ډول که مقر اوونیل مِنْ ثَمَنِ خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيْرٍ) چې د شرابو یا خنزیر ثمن دې.وَتَفْسِيْرُ الْمَسْأَلَةِ د مسئلې مطلب دادې.اِذَا قَالَ چې مقر اوونیل.لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفٌ چې ما باندې د فلانی زر درهم دی.مِنْ ثَمَنِ خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيْرٍ د شرابو یا د خنزیر د ثمن، (لَزِمَهُ الْأَلْفُ) نو په ده به زر درهم لازم وی.وَلَمْ يُقْبَلْ تَفْسِيْرُهُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دده بیان به نه قبلیږي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز، وَصَلَ أَمْ فَصَلَ) که یو ځائې ئې ونیلې وی.اوکه جلا ئې ونیلې وی.لِأَنَّهُ رُجُوْعٌ ځکه چې دا رجوع کول دی.لِأَنَّ ثَمَنَ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيْرِ لَا يَكُوْنُ وَاجِبًا ځکه چې د شرابو او خنزیر ثمن نه واجبیږي.وَأَوَّلُ كَلَامِهٖ لِلْوُجُوْبِ حالانکه دده د کلام پیل وجوب لپاره ده.(وَقَالَا) صاحبین رحمهما الله فرمائي.اِذَا وَصَلَ که یو ځائې ئې ونیلی وی.لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ) نو هیڅ به نه لازمیږي.لِأَنَّهُ بَيَّنَ بِآخِرِ كَلَامِهٖ أَنَّهُ مَا أَرَادَ بِهِ الْإِيْجَابَ ځکه چې ده د کلام په آخر سره بیان کړل.چه واجبیدل مراد نه دی.وَصَارَ او دا داسې شوه.كَمَا اِذَا قَالَ فِيْ آخِرِهٖ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ.لکه چې په آخر کې ئې انشاء الله اوونیل

تشریح: زید اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی یو زر درهم دی.کوم چې د شرابو یا خنزیر قیمت دې.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به په زید باندې زر درهم لازم وی. ﴿من ثمن خمر﴾ متصلاً اووائی.اوکه منفصلاً اووائی.امام احمد اوپه اصح قول کې امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.

وجه داده.چه ﴿من ثمن خمر﴾ ونیل.د اقرار نه رجوع کول دی.ځکه چې د شرابو او خنزیر ثمن واجب نه دې.او پیل د کلام یعنی کلمه د ،،علی ،، په وجوب باندې دلالت کوی.نودا د اقرار نه رجوع شوه.چه جائز نه ده.صاحبین او امام مالك رحمهم الله په یو قول کې ، او امام شافعي او اسحاق بن راهویه رحمهما الله فرمائي.که ده دا متصلاً ونیلې وی.نو مال به لازم نه وی.امام مزنی شافعی رحمه الله هم دا اختیار کړې دې.ځکه چې ده په آخر د کلام سره دا بیان کړل.چه زما مقصد ایجاب نه دې.اودا داسې شوه.لکه چې دې د ،،له علی ألف،، نه روسته ،،انشاءالله،، اووائی.ځواب دادې.چه انشاء الله ونیل تعلیق دې.او دلته کې ابطال دې.

قُلْنَا: ذَاكَ تَعْلِيْقٌ مونږ وایو.چه دا تعلیق دې.وَهٰذَا اِبْطَالٌ اودا ابطال دې.

تشریح: په دې باندې صاحب د نتائج په دوې (دوه) وجو سره کلام کړې دې.① اول دا چې علامه مرغیناني رحمه الله محکې د استثناء بالمشیت په مسئله کې ونیلی وو.چه ﴿لأن الإستثناء بالمشیة إما إبطال أو تعلیق﴾ او مونږ هلته کې ونیلی وو.چه ابطال کیدل د امام ابویوسف رحمه الله ، او تعلیق کیدل د امام محمد رحمه الله مذهب دې.لکه څنګه چې په معتبرو کتابونو کې ذکر دی.او په بعضو کتابونو کې ددې په عکس دی.بهرحال په دوی کې چې څوك هم د ابطال قائل وی.هغه باندې مذکوره ځواب حجت نشی کیدې؟② دوهم داچه هلته موصوف دا هم ونیلی وو.چه ﴿فإن كان الأول فقد أبطل و إن كان الثاني فكذالك إما لأن الإقرار لا يحتمل التعليق بالشرط او لأنه شرط لا يوقف عليه كما ذكرنا في الطلاق﴾ ددې حاصل دادې.چه استثناء بالمشیت اګرچه اصل کې تعلیق دې.خو په باب د اقرار کې تعلیق نه دې.بلکه هرحال کې ابطال دې. ﴿كيف يتم قوله ههنا ،، ذالك تعليق و هذا إبطال ،،﴾؟

د رومبی اعتراض ځواب داسې ممکن دې.چه دلته دامام صاحب رحمه الله د اړخه کوم ځواب ورکړې شوې دې.هغه د ابطال د قائل په نسبت الزامی ځواب شو.په دوی کې د هر یو په نسبت کیدل ضروری نه دې.

د دوهم اعتراض ځواب دادې.چه په باب د اقرار کې استثناء بالمشیت اګرچه حقیقةً تعلیق نه دې. خود تعلیق په صورت کې ضرور دې.چه ددې مسئلې په مسئله د استثناء باندې قیاس کاوه کې د قدح لپاره کافی دې.ځکه چې مسئله د استثناء نه صورةً تعلیق دې.او نه معنی تعلیق دې.هغه خو ابطال محض دې.پاتې شوه زیربحث مسئله، نودا اګرچه معنی ابطال دې.خو صورةً تعلیق دې.فافترقا،

**د مقر د دراهمو د اقرار نه روسته ددې د کوټه کیدلو د اقرارحکم**

(وَلَوْ قَالَ) که وې ونیل.لَهٗ عَلَيَّ أَلْفٌ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ چې د فلانی په ما باندې زر درهم دی.د اسبابو د قیمت، أَوْ

قَالَ ياني اوونيل. أَقْرَضَنِي أَلْفَ دِرْهَمٍ چي ما ته زر درهم پور راكړی وو. ثُمَّ قَالَ بيا ني اوونيل. هِيَ زُيُوفٌ أَوْ نَبَهْرَجَةٌ چي هغه كوټه يا بې چلنه وې. وَقَالَ الْمُقَرُّلَهُ او مقرله اوونيل. جِيَادٌ چي كره وې. لَزِمَهُ الْجِيَادُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ (¹)نو په ده به كره لازم وې. د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول كې. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرماني. إِنْ قَالَ مَوْصُولًا كه يوځاې ني ونيلې وې. يُصَدَّقُ، نو تصديق به كولې شي. وَإِنْ قَالَ مَفْصُولًا وكه جلا ني ونيلې وې. لَا يُصَدَّقُ نو تصديق به نشي كولې. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ هم په دې اختلاف ( مبني ) دی. إِذَا قَالَ كله چي ده اوونيل. هِيَ سَتُّوقَةٌ چي هغه پالش شوی ( د سپينو زرو اوبه وركړې شوې) وو. أَوْ رَصَاصٌ، يا بالكل رانګ ( قلعي يا د دهات يو قسم) وو. وَعَلَى هَذَا إِذَا قَالَ دغه ډول كه يوكس اوونيل. إِلَّا أَنَّهَا زُيُوفٌ، چي هغه كوټه وې. وَعَلَى هَذَا إِذَا قَالَ: يا ني اوونيل. لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ زُيُوفٍ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ. چي د فلانی په ما باندې زر كوټه درهم دی. د يو سامان د قيمت،

**حل اللغة:** **متاع:** اسباب، **زيوف:** جمع د زيف، كوټه، **بنهرجة:** كوټه د كوم چي رواج ( او چلن) نه وی. **جياد:** كره، **ستوقه:** كوټه دراهم چي په دې باندې د سپينو زرو( اوبه) پالش وی. **رصاص:** رانګ ( سيسه، قلعي د دهات يو قسم)، **زيافه:** كوټه كيدل، **معيب:** عيب دار، **اثمان:** د ثمن جمع ده.

**قوله: من ثمن متاع...** يو سړي اقرار اوكړو. چه ما باندې د فلانی يو زر درهم د سامان قيمت يا پور دی. خو هغه كوټه يا غيرمروج ( بې چلنه) وې. نو د امام صاحب رحمه الله په نيز به په ده باندې كره دراهم لازم وی. او دده دا قول چه،، كوټه يا بې چلنه وې،، د سره به نه قبليږی. كه متصلاً اووائی. او كه منفصلاً اووائی. د صاحبينو او د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د اتصال په صورت كې به دده تصديق كولې شی. علامه مرغيناني رحمه الله فرماني. چه لاندې مسئلوكې هم دا اختلاف دې. ﴿① له عليّ الف درهم هي ستوقة ،، او قال ،، هي رصاص ② له عليّ الف درهم إلا انها زيوف. ③ له عليّ الف درهم زيوف من ثمن متاع﴾

**تشريح:** د ثم قال په ځاې،، وقال،، كيدل پكار دی. لكه څنګه چي حاكم شهيد په كافي كې ، او شمس الائمه سرخسي او شيخ الاسلام علاء الدين اسبيجابي رحمهما الله په شرح كافي كې ونيلي دی،،و إدعى انها زيوف ،، او په مبسوط كې هم دا نقل دی. وجه داده. چه د لفظ ثم نه دا وهم پيدا كيږی. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله قول مفصولا ونيلو سره مختص دې. حالانكه د فصل په صورت كې د صاحبينو رحمهما الله هم اختلاف نشته.

لَهُمَا صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّهُ بَيَانٌ مُغَيِّرٌ چي دده روستنې كلام بيان مغير دې. فَيَصِحُّ بِشَرْطِ الْوَصْلِ نو په شرط د وصل به صحيح وی. كَالشَّرْطِ وَالْاِسْتِثْنَاءِ. لكه څنګه چي د شرط او استثناء حكم دې. وَهَذَا لِأَنَّ اسْمَ الدَّرَاهِمِ يَحْتَمِلُ الزُّيُوفَ بِحَقِيقَتِهِ وجه ددې داده. چه د دراهمو لفظ كوټه ( دراهمو) ته د حقيقت په طور، وَالسَّتُّوقَةَ بِمَجَازِهِ، او ستوقه ( رنګ شوی او پالش شوی دراهمو) ته د مجاز په طور ګډ دې. إِلَّا أَنَّ مُطْلَقَهُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْجِيَادِ خو مطلق لفظ دراهم كره اړخ ته ګرځولې شي. فَكَانَ بَيَانًا مُغَيِّرًا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ نو په دې طريقه چي دده كلام بيان مغير شو. وَصَارَ او داسې شوه. كَمَا إِذَا قَالَ لكه چي ده دا ونيلی وی. إِلَّا أَنَّهَا وَزْنُ خَمْسَةٍ. چي هغه دراهم د خمسه په وزن دی.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه په لفظ د درهم كې كره او كوټه د ټولو احتمال دې. چه كوټه ته لفظ دراهم حقيقتاً ګډ دې. ځكه چي دا هم د دراهم د جنس څخه دې. تردې چي په بيع صرف او بيع سلم كې هم ددې په ذريعه استيفاء حاصليږی. استبدال نه كيږی. او ستوقه ته مجازاً دراهم ونيلې شی. صرف دومره خبره

---

(¹) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٤١٠١٣) وكنز الدقائق (ص،٢٨٩) والدر المختار (٥١٢١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٠٢١٢)



ده، چه د اطلاق په وخت كره مراد وی. او كله چي ده هم دې ستوقه ونيلو سره تصريح اوكړله. نودا بيان تبديل شو. او داسې شوه. لكه چي دې اووائي. ﴿له عليّ الف درهم إلا انها وزن خمسة﴾ يعنی په مطلق دراهمو ونيلو نه وزن سبعه مراد وی. خو كله چي ده وزن خمسه اوونيل. نو خپل كلام ني متغير كړو. كوم چي د موصول كيدلو په صورت كې مقبول وی. اود مفصول كيدلو په صورت كې مردود وی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ هَذَا رُجُوعٌ چي دا د اقرار نه رجوع ده. لِأَنَّ مُطْلَقَ الْعَقْدِ يَقْتَضِي وَصْفَ السَّلَامَةِ عَنِ الْعَيْبِ، ځكه چي مطلق عقد د عيب نه سلامتيا غواړي. وَالزِّيَافَةُ عَيْبٌ او كوټه كيدل عيب دې. وَدَعْوَى الْعَيْبِ رُجُوعٌ عَنْ بَعْضِ مُوجِبِهِ اود عيب دعوه كول، د عقد د مقتضی نه ګرځيدل دی. وَصَارَ او دا داسې شوه. كَمَا إِذَا قَالَ لكه چي ده اوونيل. بِعْتُكَهُ مَعِيبًا چي ما ستا په لاس عيب دار مبيع خرڅ كړې وو. وَقَالَ الْمُشْتَرِي او مشتری اوونيل. بِعْتَنِيهِ سَلِيمًا چي تا زما په لاس صحيح سلامت خرڅ كړې وو. فَالْقَوْلُ لِلْمُشْتَرِي لِمَا بَيَّنَّا، نود مشتری قول قبليږی. وَالسَّتُّوقَةُ لَيْسَتْ مِنَ الْأَثْمَانِ او ستوقه دراهم د جنس ثمن څخه نه دی. وَالْبَيْعُ يَرِدُ عَلَى الثَّمَنِ حالانكه بيع په ثمن واردیږی. فَكَانَ رُجُوعًا نودا د اقرار نه ګرځيدل شو.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه دا د اقرار نه رجوع كول دی. ځكه چي مطلق عقد صحيح سلامت بدل غواړي. او كوټه او غير مروج كيدل عيب دې. اود عيب دعوه كول، رجوع كول دی. نودا داسې شوه. لكه چي ځوك دا اووائی. چه ما ستا په لاس عيب دار مبيع خرڅ كړې وو. او مشتری اووائی. نه صحيح سلامت دې خرڅ كړې وو. نود مشتری قول معتبر وی. ځكه چي مطلق عقد هم ددې تقاضا كوی. چه مبيع عيب دار نه وی. پاتې شو ستوقه( د سپينو زرو اوبه وركړې شوی دراهم)، نودا د اثمان د جنس څخه نه دی. ځكه چي دې ته دراهم ونيل مجازاً دی. حالانكه د بيع ورود په ثمن باندې كيږی. نود ستوقه ( اوبه وركړې شوی دراهمو) دعوه كول د خپل اقرار نه ګرځيدل دی.

حاصل د اختلاف دې خبرې اړخ ته راجع دې. چه كوټه دراهم په مطلق اسم دراهم كې داخل دی اوكه نه دی؟ نو امام ابوحنيفه رحمه الله عيب اړخ ته ترجيح وركړې ده. او داخل كړې ني نه دی. او صاحبينو رحمهما الله داخل كړې دی. خو په طريقه د توقف، ﴿حتى كان دعوى الزيافة بعد ذكر إسم الدراهم بيان تغيير﴾

### د وزن خمسه اقرار نه د بعض مقدار د استثناء حكم

وَقَوْلُهُ او دده دا ونيل. إِلَّا أَنَّهَا وَزْنُ خَمْسَةٍ چي په وزن د خمسه دی يَصِحُّ اسْتِثْنَاءُهُ د استثناء په طريقه صحيح دی. لِأَنَّهُ مِقْدَارٌ ځكه چي دا هم يو مقدار دې.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د استشهاد ځواب دادې. چه د ﴿إلا انها وزن خمسة﴾ والا مسئله د ﴿ما نحن فيه﴾ څخه نه ده. ځكه چي وزن خمسه يو مقدار دې. وصف نه دې. اود بعض مقدار استثناء كول صحيح دی. ځكه چي د كلام پيل مقدار ته ګډ دې. نودا د ملفوظ استثناء شوه. چه بې شكه صحيح ده.

بِخِلَافِ الْجَوْدَةِ په خلاف د كره كيدلو، لِأَنَّ اسْتِثْنَاءَ الْوَصْفِ لَا يَجُوزُ ځكه چي د وصف استثناء جائز نه ده كَاسْتِثْنَاءِ الْبِنَاءِ فِي الدَّارِ، لكه په اقرار د دار كې د عمارت استثناء،

**تشريح:** په خلاف د كره، چي د دراهمو كره كيدل يو وصف دې. اود وصف استثناء كول نه صحيح كيږی. ﴿لعدم تناول صدر الكلام إياه قصداً بل تبعاً﴾ وړاندې تير شوی دی. چه د دار په اقرار كې د بناء (عمارت) استثناء صحيح نه ده. بيا دلته په نهايه او معراج الدرايه كې دا سوال راپورته كړې دې. چه د وصف استثناء بالاجماع صحيح نه ده. بيا صاحبينو رحمهما الله د كوټه دراهمو استثناء ته څنګه صحيح ونيلې دی؟
ځواب دادې. چه صاحبينو رحمهما الله دې ته معنوی حيثيت سره صحيح ونيلی دی. او معنوی حيثيت سره كوټه كيدل عين دې. وصف نه دې. ځكه چي د مقر قول ﴿لفلان عليّ الف من ثمن متاع إلا انها زيوف﴾ په مرتبه دده ددې قول دی. چه ﴿إلا انها نقد بلد كذا﴾ او ددې ښار سكه كوټه وی. نو هلته كې دده دا بيان د موصول كيدلو په

صورت کي بالاجماع صحيح دي.او دلته قول مذکور هم په دي معنی کي دي.نودا هم صحيح کیدل پکار دی.نودا هم د دراهمو لپاره نوع شوه.وصف نشو.لکه څنګه چي د غنمو په اړه کي ،، إلا أنها ردیـة،، دي. «إلى هذا أشار في الأسرار والفوائد الظهيرية» ( نتائج).

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ په خلاف ددي کله چي اوواني. عَلَى كُرُّ حِنْطَةٍ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ إِلَّا أَنَّهَا رَدِيئَةٌ چي ما باندي د غنمو يو کُر دي.د غلام د ثمن خو هغه ردی دی. لِأَنَّ الرَّدَاءَةَ نَوْعٌ لَا عَيْبٌ،ځکه چي ردی کیدل يو نوع دي.عيب نه دي. فَمُطْلَقُ الْعَقْدِ لَا يَقْتَضِي السَّلَامَةَ عَنْهَا. نو مطلق عقد ددي نه د سلامتيا مقتضى نه دي.

تشريح: په خلاف ددي کله چي اوواني. «له علىّ كرّ حنطة من ثمن عبد إلا أنها ردية» چي دا استثناء صحيح ده.په دي دليل سره چي په غنمو کي ردی کیدل عيب نه دي.بلکه يو نوع ده.ځکه عيب خو هغه وی.چه ددي په اصل زيږيدل کي پاك صفا وی.حالانکه غنم کله کله په اصل زيږيدل کي ردی وی.تردي که يوکس مشاراليه غنم واخستل.بيا ئي دا ردی اوموندل.نو ده ته خيار عيب نه حاصليږي.نو مطلق عقد ددي امر تقاضا نه کوی.چه عوض ردی نه وی.

فائده*بعض حضراتو ددي مقام په تشريح کي فرمائيلي دی.چه مذکوره قول کي ،،إلا أنها ردية،، په حقيقت کي د سره استثناء نه ده.بلکه دا خود استثناء په صورت کي د ،،كر حنطة،، تفسير او ددي بيان دي.صاحب د کفايه رحمه الله د مسئلي په تقرير کي د ،،إلا أنها ردية،،په ځاني ،،هو ردی ،، وئيلی دی. هم په دي ئي تنبيه کړي ده.چه په دي مسئله کي مراد صيغهٔ استثناء نه ده.بلکه مراد دادي.چه د غنمو پشان څيزونو کي رداءت عيب نه دي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي غَيْرِ رِوَايَةِ الْأُصُولِ فِي الْ پور اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه د روايت اصول نه علاوه کي نقل دی. أَنَّهُ يُصَدَّقُ فِي الزُّيُوفِ چي په کوټه وئيلو کي به تصديق کولې شی. إِذَا وَصَلَ کله ئي چي دي يوځاني اووانی. لِأَنَّ الْ پور يُوجِبُ رَدَّ مِثْلِ الْمَقْبُوضِ،ځکه چي پور د مقبوض پشان واپسي واجبوی. وَقَدْ يَكُونُ زَيْفًا او دا کله کوټه هم کیدلې شی. كَمَا فِي الْغَصْبِ. لکه څنګه چي دغصب په صورت کي کيږی. وَوَجْهُ الظَّاهِرِ ظاهرالرواية وجه داده. أَنَّ التَّعَامُلَ بِالْجِيَادِ چي معامله په کره سره کيږی. فَانْصَرَفَ مُطْلَقُهُ إِلَيْهَا نو مطلق معامله به هم دي اړخ ته ګرځولې شی.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د اصول روايت ( د مبسوط، زيادات، او جامع صغيراو کبير) نه علاوه ( امالی ، نوادر، رقيات، هار، نيات وغيره) کي نقل دي.د لفظ زيوف ( کوټه) متصل وئيلو په صورت کي به تصديق کولې شی. «بأن قال لفلان علىّ ألف درهم پور هي زيوف»ځکه چي پور خو صرف دا غواړي.چه څنګه ئي اخستي وو.هم هغه شان واپس کړی.او وصول کړې شوی کله کوټه هم کيداې شی.لکه څنګه چي د غصب په صورت کي هم دا معامله ده.چه څنګه ئي غصب کړې وی.هم هغه شان واپس کول واجب وی.د ظاهرالرواية وجه داده.چه خپل منځ کي معامله په کره دراهمو سره کيږی.نو د پور وغيره مطلق معامله به کره دراهمو اړخ ته ګرځولې شی.

(وَلَوْ قَالَ وکه ده اووئيل. لِفُلَانٍ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ زُيُوفٌ چي ما باندي د فلانی زر درهم دی. وَلَمْ يَذْكُرِ الْبَيْعَ وَالْ پور او بيع او پور ئي ذکر نکړل. (قِيلَ يُصَدَّقُ) بِالْإِجْمَاعِ نو وئيلی شوی دی.چه بالاجماع به تصديق کولې شی. لِأَنَّ اسْمَ الدَّرَاهِمِ يَتَنَاوَلُهَا ځکه چي د دراهمو لفظ دي ته هم ګډ دي. (وَقِيلَ لَا يُصَدَّقُ) او وئيلی شوی دی.چه تصديق به نشی کولې. لِأَنَّ مُطْلَقَ الْإِقْرَارِ يَنْصَرِفُ إِلَى الْعُقُودِ ځکه چي مطلق اقرار عقود اړخ ته راجع کيږی. لِتَعَيُّنِهَا مَشْرُوعَةً ددي د متعين کاوه په وجه، مشروع کيدلو کي ، لَا إِلَى الِاسْتِهْلَاكِ الْمُحَرَّمِ ضائع کيدلو اړخ ته نه، چي دا حرام دی.



تشريح: که مقر د وجوب جهت ( سبب) ذکر کاوه نه بغير داسي اووئيل.چه «لفلان علىّ ألف درهم زيوف» يعني بيع او پور وغيره ئي ذکر نکړل.نو په فتاوی صغری کي د فقيه ابوجعفر په حواله سره نقل دی.چه دا مسئله په اصول کي ذکر نه ده.اوس بعض مشائخ دا وائي.که لفظ د زيوف ( کوټه) متصلاً ذکرکړی.نو بالاجماع به تصديق کولې شی.ځکه چي د دراهمو لفظ دي تولو ته ګډ دي.او شيخ ابوالحسن کرخي رحمه الله فرمائي.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به تصديق نشی کولې.که موصولاً وی.اوکه مفصولاً وی.ځکه چي مطلق اقرار عقد اړخ ته راجع کيږی.يعنی دده په ذمه د بيع وغيره کوم عقد په وجه لازميږی.نو ګويا ده د وجوب سبب بيان کړو.او وجه ددي داده.چه په شرع کي دا عقود مشروع دی.نو خامخا ضائع کاوه ( چي دا حرام دی.) اړخ ته به نشی راجع کولې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز که موصولاً وی.نو تصديق به کولې شی.ګني نه به شی کولې.او بعض مشائخو دا هم وئيلی دی.چه دا مسئله هم په مخکنی اختلاف باندي (مبنی ) ده.

**د زر درهمو د غصب اقرار نه روسته ددي د کوټه کيدلو د اقرار حکم**

(وَلَوْ قَالَ که وي وئيل. اغْتَصَبْتُ مِنْهُ أَلْفًا چي ما د فلانی نه زر( درهم) غصب کړی دی. أَوْ قَالَ يا وي وئيل. أَوْدَعَنِي چي ده زما سره وديعت ( امانت) ايخودی دی. ثُمَّ قَالَ هِيَ زُيُوفٌ بيا ئي اووئيل.چه هغه کوټه دی. أَوْ نَبَهْرَجَةٌ صُدِّقَ نو تصديق به کولې شی. وَصَلَ که يو ځائي ئي اووانی. أَمْ فَصَلَ) و که جلا ئي اووانی. لِأَنَّ الْإِنْسَانَ يَغْصِبُ مَا يَجِدُ ځکه چي انسان څه بيامومی.په زور ئي أخلی. وَيُودِعُ مَا يَمْلِكُ اود کوم شئ چي مالك وی.هم هغه وديعت ايږدی. فَلَا مُقْتَضَى لَهُ فِي الْجِيَادِ نودا کره کيدلو ته مقتضی نه دي. وَلَا تَعَامُلَ او نه ددي تعامل (عام عادت) دي. فَيَكُونُ بَيَانَ النَّوْعِ نودا به د نوع بيان وی. فَيَصِحُّ نو صحيح دي. وَإِنْ فَصَلَ اګرچه جدائي وئيلی وی. وَلِهَذَا هم دا وجه ده. لَوْ جَاءَ رَادُّ الْمَغْصُوبِ الْوَدِيعَةِ بِالْمَعِيبِ که مغصوب يا وديعت واپس کونکی عيب دار راوړو . كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ. نو هم دده قول به معتبر وی. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دي. أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِيهِ مَفْصُولًا اعْتِبَارًا بِالْ پور چي په دي کي به هم تصديق نشی کولې.د مفصول په صورت کي پور باندي قياس کاوه سره. إِذِ الْقَبْضُ فِيهِمَا هُوَ الْمُوجِبُ لِلضَّمَانِ. ځکه چي دي دواړو کي قبضه ضمان ثابتوی. وَلَوْ قَالَ اوکه ده اووئيل. هِيَ سَتُّوقَةٌ چي دا پالش شوی أَوْ رَصَاصٌ بَعْدَ مَا أَقَرَّ بِالْغَصْبِ الْوَدِيعَةِ يا بالکل رانګ ( کوټه) وو.د غصب يا وديعت اقرار نه پس، وَوَصَلَ اودا ده يو ځائي اووئيل. صُدِّقَ نو تصديق به کولې شی. وَإِنْ فَصَلَ او که جدائي اووئيل. لَمْ يُصَدَّقْ نو تصديق به نشی کولې. لِأَنَّ السَّتُّوقَةَ لَيْسَتْ مِنْ جِنْسِ الدَّرَاهِمِ ځکه چي ستوقه (اوبه ورکړې شوی ) د جنس دراهمو ځنې نه دی. لَكِنَّ الِاسْمَ يَتَنَاوَلُهَا مَجَازًا خو لفظ ( دراهم) دي ته مجازاً ګډ دي. فَكَانَ بَيَانًا مُغَيِّرًا نو دا بيان تبديل شو. فَلَا بُدَّ مِنَ الْوَصْلِ نو يوځائي وئيل ضروری دی.

تشريح: يو سړی اقرار اوکړو.چه ما د فلانی زر درهم په زور اخستي دی.يا ده ماته د وديعت په طور راکړی دی.خو هغه کوټه دی.يا نه چليږی.نو که متصل اووانی.اوکه منفصل ووايي .په هرشان به دده تصديق کولې شی.ځکه چي وديعت اوغصب د سلامتيا تقاضا نه کوی.ځکه چي په زبردستئ اخستونکي چي څه بيامومی.اخلی.او تختی.دغه شان چي مودع ته څه هم ورکړې شی.هغه ئي ايږدی.نو دده زيوف يا بنهرجه وئيل.نوع بيانول شو.تغيير بيانول نشو.

(وَإِنْ قَالَ فِي هَذَا كُلِّهِ اوکه ده په دي تولو صورتونو کي اووئيل. أَلْفًا چي زر دی. ثُمَّ قَالَ بيا ئي اووئيل. إِلَّا أَنَّهُ يَنْقُصُ كَذَا خو په هغې کي دومره کم دی. لَمْ يُصَدَّقْ نو تصديق به نه کيږی. وَإِنْ وَصَلَ وکه يو ځائي اووانی. صُدِّقَ) نو تصديق به کولې شی. لِأَنَّ هَذَا اسْتِثْنَاءُ الْمِقْدَارِ ځکه چي دا د مقدرا استثناء ده. وَالِاسْتِثْنَاءُ يَصِحُّ مَوْصُولًا او استثناء يوځائي صحيح کيږی. بِخِلَافِ الزِّيَافَةِ په خلاف د کره کيدلو لِأَنَّهَا وَصْفٌ، ځکه چي دا وصف دي. وَاسْتِثْنَاءُ الْأَوْصَافِ لَا يَصِحُّ، اود اوصافو استثناء نه صحيح کيږی. وَاللَّفْظُ يَتَنَاوَلُ الْمِقْدَارَ دُونَ الْوَصْفِ او لفظ د

،،الف،، (زر) مقدار ته ګډ دي.وصف ته ګډ نه دي. وَهُوَتَصَرُّفٌ لَفْظِيٌّ او استثناء لفظي تصرف وي. كَمَابَيَّنَّا، وَلَوْ كَانَ الْفَصْلُ ضَرُوْرَةَ انْقِطَاعِ الْكَلَامِ او كه د ساه په ختميدلو د اړتيا په وجه كلام كې فصل واقع شي. فَهُوَوَاصِلٌ نودا اصل دي. لِعَدَمِ اِمْكَانِ الْاِحْتِرَازِعَنْهُ خكه چې ددې نه بچ كيدل نا ممكن دي. (وَمَنْ أَقَرَّبِغَصْبِ ثَوْبٍ) يو كس د كپړې غصب کاوه اقرار اوكړو. ثُمَّ جَاءَبِثَوْبٍ مَعِيْبٍ بيا ئې عيب دار كپړه راوړله. فَالْقَوْلُ لَهُ) نو قول به هم دده ( راجح) وي. لِأَنَّ الْغَصْبَ لَايَخْتَصُّ بِالسَّلِيْمِ خكه چې په زور اخستل، صحيح سلامت سره خاص نه دی.

**تشريح:** كه مقر په بيع، قرض، او غصب او ايداع كې لفظ د ،،الف،، ذكر كړو.او وې ونيل.چه «لفلان علىّ الف، او دعى فلان الفاً ، غصبت منه الفاً» او ددې نه روسته ئې دا هم اوونيل. «إلا أنه ينقص كذا» نو په جلا جلا ونيلو كې به ئې تصديق نه كيږي.په يوځائې ونيلو كي به ئې تصديق كولې شي.خكه چې دا د مقدار استثناء موصولاً صحيح كيږي.مفصولاً نه صحيح كيږي.

## د هلاك شوي دراهمو د وديعت اقرار.اود مقرله د غصب دعوي كول

(وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ: يو كس دوهم ته اوونيل. أَخَذْتُ مِنْكَ أَلْفَ دِرْهَمٍ وَدِيْعَةً چې ما ستا نه زر درهم وديعت اخستي وو. فَهَلَكَتْ هغه ضائع شو. فَقَالَ هغه اوونيل. لَابَلْ أَخَذْتَهَا غَصْبًا نا بلكه تا په زبردستئ اخستي وو. فَهُوَ ضَامِنٌ نو مقر به ضامن وي. وَإِنْ قَالَ وكه مقر دا اوونيل. أَعْطَيْتَنِيْهَا وَدِيْعَةً چې هغه تا ماته وديعت راكړې وو. فَقَالَ هغه اوونيل. لَابَلْ غَصَبْتَنِيْهَا چې نا، بلكه تا غصب كړې وو. (لَمْ يَضْمَنْ) نو مقر به ضامن نه وي. وَالْفَرْقُ فرق دادې. أَنَّ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ أَقَرَّبِسَبَبِ الضَّمَانِ وَهُوَالْأَخْذُ ثُمَّ ادَّعٰى مَايُبْرِئُهٗ چې په ړومبي صورت كې ده په سبب د ضمان سره د اخستلو اقرار كاوه نه روسته د هغه شئ دعوه كړې ده.چه هغه دې برى كړي. وَهُوَالْإِذْنُ او هغه اجازت دي. وَالْآخَرُيُنْكِرُهٗ او دوهم ددې منكر دي. فَيَكُوْنُ الْقَوْلُ لَهٗ مَعَ الْيَمِيْنِ نو قسم سره به هم دده قول قبول وي. وَفِي الثَّانِيْ أَضَافَ الْفِعْلَ إِلٰى غَيْرِهٖ او په دوهم صورت كې مقر د فعل غير اړخ ته نسبت كړې دي. وَذَاكَ يَدَّعِيْ عَلَيْهِ سَبَبَ الضَّمَانِ وَهُوَالْغَصْبُ او هغه په ده باندې د سبب د ضمان يعنى په زبردستئ سره د اخستلو مدعى دي. فَكَانَ الْقَوْلُ لِمُنْكِرِهٖ مَعَ الْيَمِيْنِ نو قسم سره به ددې د منكر قول قبول وي.

**تشريح:** زيد د عمرو متعلق اقرار اوكړو.چه ما ستا نه يو زر درهم د وديعت په طور اخستي وو.او هغه زما سره ضائع شو.عمرو اوونيل. نا بلكه تا په زور اخستي وې.نو مقر به ضامن وي.يعنى زيد باندې به زر درهم وركول لازمي وي.او كه زيد عمرو ته داسې اوونيل.چه تا ماته يو زر درهم د وديعت په طور راكړې وو.هغه زما سره ضائع شو.او عمرو خواب كې اوونيل.چه نا بلكه تا زما نه په زور اخستي دي.نو په دې صورت كې به زيد ضامن نه وي.وجه د توپير داده.چه په ړومبئ مسئله كې كله زيد د اخستلو اقرار اوكړو.نو په ده تاوان لازم شو.ددې نه روسته موجب د براءة ( يعنى د اذن بالاخذ) مدعى شو.او مقر له ( عمرو) ددې منكر دي.نود مقرله قول به معتبر وي.او په دويمه مسئله كې ده د ضمان سبب يعنى د خپلو اخستلو اقرار نه دې كړې.بلكه د هغې د وركاوه اقرار ئې كړې دې.او وركول د دوهم كس فعل دې.چه دا ضمان نه ثابتوي.نو مقرله د ضمان د سبب مدعى شو.او مقر منكر دې.نود مقر قول به معتبر وي.او هغه به ضامن نه وي.

وَالْقَبْضُ فِيْ هٰذَا كَالْأَخْذِ او قبضه په دې اړه كې پشان د اخستلو، وَالدَّفْعُ كَالْإِعْطَاءِ، او وركول پشان د اعطاء ده. فَإِنْ قَالَ قَائِلٌ: كه يو كس اووائي. إِعْطَاؤُهٗ وَالدَّفْعُ إِلَيْهِ لَايَكُوْنُ إِلَّا بِقَبْضِهٖ، چې مقر ته وركول،او عطاء كول، دده د قبضې نه بغير نشي كيدلې. فَنَقُوْلُ: نو مونږ وايو. قَدْ يَكُوْنُ بِالتَّخْلِيَةِ وَالْوَضْعِ بَيْنَ يَدَيْهِ، چې كله كله په تخليه او دده مخې ته په ايخودلو سره كيږي. وَلَوِاقْتَضٰى ذٰلِكَ او كه هم قبضه ددې مقتضى وي. فَالْمُقْتَضٰى ثَابِتٌ ضَرُوْرَةً نو مقتضى ضرورةً ثابت ده. فَلَايَظْهَرُفِي انْعِقَادِهٖ سَبَبُ الضَّمَانِ، نو سبب به په ضمان كيدلو كې نه ښكاره كيږي.



**تشريح:** په مذكوره حكم كې قبض پشان د اخستلو،او وركول پشان د اعطاء ده.يعنى كه مقر د اخذ په ځائې قبض ذكر كړو.او داسې ئې اوونيل.چه «قبضت منك الف درهم وديعة» نو ددې حكم هم دادې.كوم چې د ،،اخذت،، ونيلو دي.او كه ده د ،،اعطاء،، په ځائې لفظ دفع ذكر كړو.او داسې ئې اوونيل.چه «دفعت إلى الف درهم» نو ددې حكم هم هغه دې.كوم چې د ،،اعطيت،، ونيلو دې.اوس كه څوك دا اعتراض اوكړي.چه مقر ته وركول، او عطاء كول، دده دقبضې نه بغير نشي كيدلې.نود اعطاء او دفع اقرار د قبضه كاوه اقرار شو.اود قبضې په اقرار سره ضامن كيږي.نود اعطاء او دفع په اقرار سره هم ضامن كيدل پكار دي.نو مونږ به خواب كې وايو.چه د اعطاء او دفع دده د قبضې نه بغير نه كيدل، مونږ نه منو.خكه چې اعطاء او دفع د قبضې نه بغير داسې هم ممكن ده.چه هغه تخليه اوكړي.يعنى منع اوچته كړي.يا ئې د هغه مخې ته كيږدي.نود اعطاء او دفع اقرار كول،د قبض د اقرار مقتضى نه دې.او كه مونږ اومنو.چه دده اقرار د قبض اقرار ته مقتضى دې.نو دا ضرورةً ثابت دې.او كوم شئ چې ضرورةً ثابت وي.د هغې ثبوت د اړتيا په اندازه كيږي.نودا به دده په ذمه د ضمان سبب كيدلو كې موثر نه وي.

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: او دا ددې خلاف دې.كله چې هغه دا اووائي. أَخَذْتُهَا مِنْكَ وَدِيْعَةً چې ما هغه ستا نه وديعةً اخستې وې. وَقَالَ الْآخَرُ او دوهم اووائي. لَابَلْ قَرْضًا چې نا بلكه د پور په طور مې اخستې وې. حَيْثُ يَكُوْنُ الْقَوْلُ لِلْمُقِرِّ چې قول به د مقر وي. وَإِنْ أَقَرَّبِالْأَخْذِ اګرچه ده د اخستلو نه اقرار كړې دې. لِأَنَّهُمَا تَوَافَقَا هُنَالِكَ عَلٰى خكه چې دوى دلته په دې باندې اتفاق كړې دې. أَنَّ الْأَخْذَ كَانَ بِالْإِذْنِ چې اخستل په اجازت سره شوي دي. إِلَّا أَنَّ الْمُقَرَّلَهٗ يَدَّعِيْ سَبَبَ الضَّمَانِ وَهُوَالْ پور خو مقرله د سبب د ضمان يعنى د پور مدعى دې. وَالْآخَرُيُنْكِرُ او مقر ددې منكر دې. فَافْتَرَقَا نو په دواړو كې توپير شو.

**تشريح:** په مسئله كې چې كوم دا ذكر شو.چه د وديعت په طور د اخستلو په صورت كې به مقر ضامن وي.دا ددې خلاف دې.كله چې مقر او مقر له دواړه لفظ د اخذ ذكر كړي.يعنى مقر اووائي.چه «أخذتها منك وديعة» او مقر اووائي. «لا بل أخذتها قرضا» چې په دې صورت كې به د مقر قول معتبر وي.اګرچه هغه د اخستلو اقرار كړې دې.وجه داده.چه په دې صورت كې ددوى دواړو په دې امر كې اتفاق دې.چه دا اخستل اجازت سره واقع شوي وو.ددې نه روسته مقرله په ده باندې د ضمان د سبب يعنى د پور دعوه كوي.او مقر ددې انكار كوي.نود منكر قول به دده په قسم سره قبول وي.

❓ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په دې سره د مقر په قول ،،اخذتها غصباً،،او ،،اخذتها قرضاً،، دواړو كې توپير ښكاره شو.خو صاحب نتائج په دې باندې دا بحث كړې دې.چه مقر خو د هغه شئ مدعى دې.چه هغه دې د ضمان نه برى كړي.او هغه شئ مطلق اذن نه دې.بلكه هغه مخصوص اذن دې.كوم چې د وديعت په ضمن كې حاصل دې.اودا ښكاره ده.چه په دې مخصوص اذن سره اخستلو باندې مقرله دده موافق نه دې.ګنى هغه به په ده باندې د ضمان د سبب يعنى د پور دعوه نه كوله.

## په اخستو دراهمو كښې د وديعت دعوي باندې د امين د ذاتي رقم دعوي!

(فَإِنْ قَالَ كه وې ونيل. هٰذِهِ الْأَلْفُ كَانَتْ وَدِيْعَةً لِيْ عِنْدَ فُلَانٍ چې دا زر( درهم) فلانئ سره زما وديعت وو. فَأَخَذْتُهَا ما دهغه نه واخستلې. فَقَالَ فُلَانٌ فلانئ اوونيل. هِيَ لِيْ هغه خو زما دی. فَإِنَّهٗ يَأْخُذُهَا) نو فلانئ به ئې اخلي. لِأَنَّهٗ أَقَرَّبِالْيَدِ لَهٗ خكه چې مقر د هغه لپاره د قبضې اقرار كړې دې. وَادَّعٰى اسْتِحْقَاقَهَا عَلَيْهِ او په هغه ئې د زرو ( درهمو) د استحقاق دعوه كړې ده. وَهُوَيُنْكِرُ او هغه منكر دې. وَالْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ.نود منكر قول به معتبر وي. (وَلَوْقَالَ: او كه وې ونيل. آجَرْتُ دَابَّتِيْ هٰذِهٖ فُلَانًا چې ما فلانئ ته خپل دا حيوان (څاروې) په كرايه وركړې وو. فَرَكِبَهَا او هغه په دې باندې سور شو. وَرَدَّهَا، بيا ئې واپس كړو. أَوْقَالَ: يا ئې اوونيل. آجَرْتُ ثَوْبِيْ هٰذَا فُلَانًا

چي ما خپله دا کپړه فلاني ته اجرت باندې ورکړې وه. فَلَبِسَهُ هغه واغوستله. وَرَدَّهُ و واپس ئي کړله. وَقَالَ فُلَانٌ و فلانی اوونیل. كَذَبْتَ چي ته دروغجن ئي. وَهُمَا لِي دا خو زما دی. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول به د مقر (قبول) وی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] اودا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی. (وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: صاحبين رحمهما الله فرمائی. الْقَوْلُ قَوْلُ الَّذِي أُخِذَ مِنْهُ الدَّابَّةُ وَالثَّوْبُ) چې قول به دهغه کس وی. د چا نه چې حیوان (څاروې) یا کپړه اخستې شوې ده. وَهُوَ الْقِيَاسُ او قیاس هم دا دې.

تشريح: زيد عمر ته اوونیل. چه زما دا شئ تا سره ودیعت وو. نو ما ستا نه واخستلو. عمرو اوونیل. نا بلکه هغه خو زما دې. نو مقرله (عمرو) به دغه شئ د مقر (زید) نه اخلی. ځکه چې زید ړومبې د عمرو د قابض کیدلو اقرار کړې دې. ددې نه روسته هغه د خپل استحقاق دعوه کوی. او مقرله ددې منکر دې. نود مقرله (عمرو) قول به معتبر وی. اوکه زید داسې اوونیل. چه ما خپل دا اوښ یا کپړه فلاني ته په کرایه باندې ورکړې وه. هغه کپړه واغوستله، یا اوښ باندې سور شو. او ماته ئې واپس کړو. او فلانی خواب ورکړو. چه دا اوښ یا کپړه خو زما ده. نو په دې صورت کې به د امام صاحب رحمه الله په نیز د مقر قول معتبر وی. استحساناً. د صاحبینو او ائمه ثلاثه په نیز به د هغه کس قول معتبر وی. دچا نه چې دا اوښ یا کپړه اخستې شوې ده. او قیاس هم دا غواړی.

وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الْإِعَارَةُ وَالْإِسْكَانُ او هم په دې اختلاف دی. پور اخستل، او په کور کې اوسول وَلَوْ قَالَ او که وې ونیل. خَاطَ فُلَانٌ ثَوْبِي هَذَا بِنِصْفِ دِرْهَمٍ چې فلانی زما دا کپړه د نصف درهم په بدله کې اوګندله. ثُمَّ قَبَضْتُهُ بیا دا ما پخپله قبضه کې واخستله. وَقَالَ فُلَانٌ و فلانی اوونیل. الثَّوْبُ ثَوْبِي چې کپړه خو زما ده. فَهُوَ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ فِي الصَّحِيحِ نو په صحیح قول کې دا هم په دې اختلاف باندې دی.

تشريح: علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی. چه د پور اود رهائش (اوسیدلو) مسئله هم په دې اختلاف (مبنی) ده. مثلاً مقر اوونیل. «أعرت دابتي هذه فلاناً فركبها ثم ردها علي، أعرت ثوبي هذا فلاناً فلبسه ثم رده علي، أسكنت داري هذه فلاناً ثم أخرجته منها» او فلانی ددې په ځواب کې اوونیل. «كذبت بل الدابة والثوب والدار لي» او که مقر دا اوونیل. «خاط فلان ثوبي هذا بنصف درهم ثم قبضته» او فلانی ددې په ځواب کې اوونیل. «لا بل الثوب ثوبي» نو بعض حضراتو اګرچه دا ونیلی دی. چه په دې صورت کې به بالاجماع د مقر قول قبول وی. خو صحیح داده. چه دا هم په دې اختلاف (مبنی) ده.

## د قیاس د وجې نه روسته د وجې د استحسان بیان

وَجْهُ الْقِيَاسِ مَا بَيَّنَّاهُ فِي الْوَدِيعَةِ. وجه د قیاس خو هغه وه. کوم چې موږ په ودیعت کې بیان کړې ده. وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وَهُوَ الْفَرْقُ او وجه د استحسان او هم دا توپیر دادې أَنَّ الْيَدَ فِي الْإِجَارَةِ وَالْإِعَارَةِ ضَرُورِيَّةٌ چې اجاره او اعاره کې قبضه ضروری وی. تَثْبُتُ ضَرُورَةَ اسْتِيفَاءِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَهُوَ الْمَنَافِعُ کوم چې د معقود علیه یعنی د منافع حاصلولو ارتیا سره ثابتیږی. فَيَكُونُ عَدَمًا فِيمَا وَرَاءَ الضَّرُورَةِ نود ارتیا نه په علاوه کې به کالعدم وی. فَلَا يَكُونُ إِقْرَارًا لَهُ بِالْيَدِ مُطْلَقًا نو مقرله لپاره به مطلقاً د قبضې اقرار نه وی. بِخِلَافِ الْوَدِيعَةِ په خلاف د ودیعت، لِأَنَّ الْيَدَ فِيهَا مَقْصُودَةٌ چې په دې کې اراده سره قبضه کیږی. وَالْإِيدَاعُ إِثْبَاتُ الْيَدِ قَصْدًا اود ایداع معنی قصداً قبضه ثابتول دی. فَيَكُونُ الْإِقْرَارُ بِهِ اعْتِرَافًا بِالْيَدِ لِلْمُودِعِ. نود ودیعت اقرار به مودع لپاره د قبضې اقرار وی.

تشريح: وجه د قیاس هم هغه ده. کومه چې د ودیعت په مسئله کې ذکر شوه. «وهو قوله لأنه أقر باليد له و إدعى

---

[1] القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في ردالمحتار (۵۱۳\۴) ونتائج الأفكار (۳۵۱\۷) ومجمع الأنهر (۴۱۲\۳) والبحرالرائق (۲۵۴\۷) والدرالمنتقى (۴۱۲\۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۰۲\۲)



استحقاقها عليه و هو ينكر» وجه د استحسان داده. چه په اجاره او اعاره کې قبضه د استيفاء د معقود علیه، یعنی د منافعو حاصلولو د ارتیا لپاره وی. نو قبضه به هم ددې ارتیا پورې محدود وی. او ددې نه په علاوه کې به معدوم ګڼرلې شی. نود اجارې او اعارې اقرار دده دملکیت دلیل نشی کیدلې. په خلاف د ودیعت. چه په دې کې قبضه مقصود وی. ځکه چې د ودیعت نه مقصود ساتنه وی. او ساتنه د قبضې نه بغیر نشی کیدلې.

وَوَجْهُ آخَرُ أَنَّ فِي الْإِجَارَةِ وَالْإِعَارَةِ وَالْإِسْكَانِ أَقَرَّ بِيَدٍ دویمه وجه د توپیر داده. چه په اجاره، اعاره او اوسولو کې د داسې قبضې اقرار دې. ثَابِتَةٍ مِنْ جِهَتِهِ کومه چې دده د اړخه ثابت ده. فَيَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ فِي كَيْفِيَّتِهِ نو ددې په کیفیت کې به هم دده قول معتبر وی

تشريح: د توپیر دویمه وجه داده. چه اجاره د عاریت ورکولو، او په کور کې دننه اوسولو کې مقر د داسې قبضې اقرار کړې دې. کومه چې دده د اړخه ثابت ده. نو ددې قبضې د ثبوت په کیفیت کې به هم دده قول مقبول وی. په کومه طریقه چې هم وی. لکه مثلاً یو غلام دده په قبضه کې دې. ددې په اړه کې دې وائی. چه دا زما غلام دې. چه ما دا د فلانی په لاس خرڅ کړې دې. خو تر اوسه پورې ما نه دې سپارلې. مقرله وائی. چه غلام خو زما دې. ما ستا نه نه دې اخستې. نو قول به د مقر معتبر وی. د مقرله به نه وی. (نهایه، معراج). دغه ډول که ده دا اوونیل. چه ما فلانی سړی ته د زر درهمو په عوض کې د خپل دې غلام مالك جوړ کړې دې. خو ما تر اوسه پورې ددې په قیمت باندې قبضه نه ده کړې. ځکه چې ما ته ددې د منع کاوه حق دې. نو هم دده قول به معتبر وی. اګرچه دوهم سړې ددې خلاف اووائی. (عنایه، شرح تاج الشريعة)

وَلَا كَذَلِكَ فِي مَسْأَلَةِ الْوَدِيعَةِ او په مسئلې د ودیعت کې داسې نه ده. لِأَنَّهُ قَالَ فِيهَا كَانَتْ وَدِيعَةً، ځکه چې هغې کې مقر دا ونیلې دې، چې هغه ودیعت وو. وَقَدْ تَكُونُ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ، او ودیعت کله کله دده د فعل نه بغیر هم کیږی. حَتَّى لَوْ قَالَ أَوْدَعْتُهَا تردې که هغه اووائی. چه ما دا ودیعت درکړې وو. كَانَ عَلَى هَذَا الْخِلَافِ نو دا به هم په دې اختلاف وی.

تشريح: او په مسئلې د ودیعت کې دا خبره نشته. ځکه چې د ودیعت په صورت کې خو مقر دا ونیلی دی. چه زما دوې (دوه) زره درهم فلانی سره ودیعت وو. او ددې نه دا نه ثابتیږی. چه ده ته قبضه د مقر د اړخه ملاؤ شوې وه. ځکه چې ودیعت کله کله دده د فعل نه بغیر هم کیږی. لکه غورزیدلې څیز. چې اوچتونکی سره ودیعت وی. اګرچه د غورزیدلې شئ مالك ده ته نه وی ورکړې.

أ د علامه مرغیناني رحمه الله په قول «و قد يكون من غير صنعه» باندې دا اعتراض شوې دې. چه دا د مخکنی قول د «الإيداع إثبات اليد قصداً» منافی دې. ځکه چې قصداً د قبضې اثبات د صنع مقتضی دې. ددې ځواب دا ورکړې شوې دې. چه د صنع نه مراد صنع د مقر ده. د مودع صنع نه ده. او قصداً د قبضې اثبات د مودع د صنع مقتضی دې،، فلا منافاة،،

وَلَيْسَ مَدَارُ الْفَرْقِ عَلَى ذِكْرِ الْأَخْذِ فِي طَرَفِ الْوَدِيعَةِ اود توپیر مدار د ودیعت په اړخ کې د اخستلو په ذکر باندې، وَعَدَمِهِ فِي الطَّرَفِ الْآخَرِ وَهُوَ الْإِجَارَةُ وَأُخْتَاهُ او په دوهم اړخ یعنی اجاره او اعاره او اوسیدلو کې د اخستلو ذکر نه کاوه باندې نه دی. لِأَنَّهُ ذَكَرَ الْأَخْذَ فِي وَضْعِ الطَّرَفِ الْآخَرِ فِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ أَيْضًا. ځکه چې امام محمد رحمه الله په کتاب الاقرار کې دوهم اړخ یعنی په اجاره کې هم لفظ د،، اخذ،، ذکر کړې دې.

تشريح: د شیخ بن شجاع بلخی شاګرځ (ګرد)، علی بن موسی قمی عراقی توپیر واضح کاوه کې فرمائیلی دی. چه د ودیعت په مسئله کې واپس کول ځکه واجب دی. چه په دې کې مقر،، اخذتها منه،، ونیلی دی. نو ددې جزا واجب ده. اود اخستلو جزا (بدله) هم داده. چه واپس کړی. په خلاف د اجاره او اعاره، چې په دې کې هغه،، فردها علي،، ونیلی دی. «فكان الإفتراق في الحكم للإفتراق في الوضع» علامه مرغیناني رحمه الله ددې توپیر تردید

كوي.فرماني.چه د توپير مدار په دې خبره نه دې.چه مقر د وديعت په اړخ كي لفظ د ،،اخذ،، ونيلي دې.او په اړخ د اجاره او اعاره كي ئې دا لفظ نه دې ونيلي.بلكه لفظ د ،،رد،، ئې راوړلي دې.ځكه چې امام محمد رحمه الله په كتاب الاقرار كي د اجاره او اعاره په اړخ كي هم لفظ د اخذ (اخستل) ذكر كړى دى.او حكم ئې هم هغه بيان كړې دې.كوم چې وړاندې ذكر شو.ددې نه معلومه شوه.چه د توپير مدار په لفظ د اخذ باندې نه دې.بلكه مدار په قبضه باندې دې.چه د وديعت په صورت كي د مقر د اړخه د دوهم لپاره د پوره قبضې اقرار دې.اګرچه هغه د مقر په ور كاوه سره نه وى حاصل شوې.اود اجاره او اعاره په صورت كي يو خو صرف د اړتيا په اندازه د قبضې اقرار دې. دوهم دا چې قبضه هم د خپل اړخه د ور كاوه اقرار دې.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا اودا د هغې خلاف دې. إِذَا قَالَ كله چې ده اوونيل. اقْتَضَيْتُ مِنْ فُلَانٍ أَلْفَ دِرْهَمٍ ما د فلانى نه زر درهم وصول كړل. كَانَتْ لِي عَلَيْهِ چې كوم چې زما په هغه وو. أَوْ أَقْرَضْتُهُ أَلْفًا يا ما هغه ته زر درهم پور وركړى وو. ثُمَّ أَخَذْتُهَا مِنْهُ بيا مې د هغه نه واخستلې. وَأَنْكَرَ الْمُقَرُّ لَهُ او مقرله ددې انكار اوكړو. حَيْثُ يَكُونُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو قول به د منكر وى. لِأَنَّ الدُّيُونَ تُقْضَى بِأَمْثَالِهَا، ځكه چې پور په مثل ور كاوه سره خلاصيږى. وَذَلِكَ إِنَّمَا يَكُونُ بِقَبْضٍ مَضْمُونٍ، اودا به مضمون په قبضه سره وى. فَإِذَا أَقَرَّ بِالِاقْتِضَاءِ نو هركله چې ده د وصولولو اقرار اوكړو. فَقَدْ أَقَرَّ بِسَبَبِ الضَّمَانِ نو د ضمان د سبب اقرار ئې اوكړو. ثُمَّ ادَّعَى تَمَلُّكَهُ عَلَيْهِ بيا ئې په ده باندې د قبضې دعوه اوكړله. بِمَا يَدَّعِيهِ مِنَ الدَّيْنِ مُقَاصَّةً د مقاصې په طريقه ددې مال پخپله د مالك كيدلو مدعى شو. وَالْآخَرُ يُنْكِرُهُ، او دوهم ددې منكر دې. أَمَّا هَاهُنَا پاتې شوه دلته، الْمَقْبُوضُ عَيْنُ مَا ادَّعَى فِيهِ الْإِجَارَةَ نو مقبوض بعينه هم هغه دې.په كوم كي ئې چې د اجارې وغيره دعوه كړې ده. وَمَا أَشْبَهَهَا فَافْتَرَقَا نو په دواړو كي توپير اوشو.

**تشريح:** يعنى د اجاره وغيره مذكوره حكم، د پور حكم خلاف دې.ځكه چې پور خو په مثل ور كاوه سره ادا كولې شى.اودا به هغه وخت كيږى.كله چې دده قبضه مضمون وى.نود پور د وصولولو اقرار به پخپل ځان باندې د ضمان د سبب اقرار وى.او په اجاره وغيره كي مقبوضه شئ مثل نه وى.بلكه بعينه هم هغه شئ وى.په كوم كي ئې چې د اجارې دعوه كړې ده.

### د مقرله د عمل اقرار كولو حكم

لَوْ أَقَرَّ كه اقرار ئې اوكړو. أَنَّ فُلَانًا زَرَعَ هَذِهِ الْأَرْضَ چې فلانى په دې ځمكه كي فصل كړلې دې. أَوْ بَنَى هَذِهِ الدَّارَ يا ئې دې خانې كي عمارت جوړ كړې دې. أَوْ غَرَسَ هَذَا الْكَرْمَ يا ئې د انګورو په باغ كي ونې لګولى دى. وَذَلِكَ كُلُّهُ فِي يَدِ الْمُقِرِّ او حال داچه واړه د مقر په قبضه كي دى. فَادَّعَاهَا فُلَانٌ بيا فلانى ددې دعوه اوكړله. وَقَالَ الْمُقِرُّ او مقر اوونيل. لَا بَلْ ذَلِكَ كُلُّهُ لِي چې نا، بلكه دا واړه زما دى. اسْتَعَنْتُ بِكَ فَفَعَلْتَ نو تا اوكړو.ما خو ستا نه صرف كومك اخستې وو. أَوْ فَعَلْتَهُ بِأَجْرٍ يا تا په مزدورئ باندې كار كړې دې. فَالْقَوْلُ لِلْمُقِرِّ نو قول به د مقر معتبر وى. لِأَنَّهُ مَا أَقَرَّ لَهُ بِالْيَدِ ځكه چې ده فلانى لپاره د قبضې اقرار نه دې كړې. وَإِنَّمَا أَقَرَّ بِمُجَرَّدِ فِعْلٍ مِنْهُ بلكه صرف د هغه د فعل اقرار ئې كړې دې. وَقَدْ يَكُونُ ذَلِكَ فِي مِلْكٍ فِي يَدِ الْمُقِرِّ حالانكه كار كله كله د هغه كس په ملكيت كي كيږى.كوم چې د مقر په قبضه كي دې. وَصَارَ اودا داسې شوه. كَمَا إِذَا قَالَ لكه چې ده اوونيل. خَاطَ لِي الْخَيَّاطُ قَمِيصِي هَذَا بِنِصْفِ دِرْهَمٍ چې درزى زما دا قميص په نصف درهم كي ګنډلې دې. وَلَمْ يَقُلْ دا ئې اونه ونيل. قَبَضْتُهُ مِنْهُ چې ما هغه نه واخستلو. او پخپله قبضه كي مې كړو. لَمْ يَكُنْ إِقْرَارًا بِالْيَدِ نودا به د درزى د قبضې اقرار نه وى. وَيَكُونُ الْقَوْلُ لِلْمُقِرِّ اود مقر قول به قبول وى. لِمَا أَنَّهُ أَقَرَّ بِفِعْلٍ مِنْهُ ځكه چې ده د درزى صرف د فعل اقرار كړې دې. وَقَدْ يَخِيطُ ثَوْبًا فِي يَدِ الْمُقِرِّ كَذَا هَذَا او درزى كله كله كپړه د مقر په قبضه كي كيدلو سره ګنډى

**تشريح:** مقر اقرار اوكړو.چه فلانى سړى په دې ځمكه كي فصل كړلې دې.يا ئې دا خانې تعمير كړې دې.يا ئې



د انګورو په دې باغ كي ونې لګولى دى.او حال داچه دا ځمكه او كور او باغ واړه د مقر په قبضه كي دى.اوس فلانى سړى يعنى مقرله ددې څيزونو دعوه اوكړله.نو مقر په ځواب كي اوونيل.چه دا واړه شيان خو زما ملكيت دى.ما خو ستا نه صرف د كار كومك اخستې وو.نوتا زما دا كار اوكړو.يا تا دا كار په مزدورئ باندې كړې دې.نو دلته به د مقر قول معتبر وى.ځكه چې ده د مقرله د قبضې اقرار نه دې كړې.بلكه د هغه صرف د يو عمل اقرار دې كړې دې.اود غير صرف د عمل اقرار، د هغه په قبضې باندې دلالت نه كوى.ځكه چې عمل كله كله په اجير او مددګار باندې هم كولې شى.او شئ د مالك په قبضه كي وى.نودا مسئله داسې شوه.لكه چې څوك دا اووائى.چه فلانى درزى زما دا قميص په نصف درهم كي ګنډلې دې.اودا ئې اونه ونيل.چه ما د هغه نه اخستې دې.پخپله قبضه كي مې كړې دې.نو په دې قول سره د درزى د قبضې اقرار نه كيږى.بلكه دا د درزى صرف د يو فعل اقرار دې.اود درزى فعل كوم چې ګنډل دى.هغه د مقر په كور كي هم كولې شى.

## باب اقرار المريض

ژباړه: (دا) باب د بيمار د اقرار (په بيان كي) دې.

**تشريح:** د صحت مندو خلګو د اقرار نه د فارغ كيدلو نه روسته د مريض د اقرار احكام بيانوى.ځكه چې اول اصل دې.او ثانى عارض او فرع ده.اود فرع ذكر د اصل نه روسته مناسب دې.بيا د مريض د اقرار نه وړاندې احكام داسې دى.كوم چې مريض سره خاص دى.په دې وجه مصنف ددې لپاره مستقل باب قائم كړو.

### په مرض الموت كښې د قرضونو د اقرار حكم

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ الرَّجُلُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ بِدُيُونٍ كله چې اقرار اوكړو، يو كس پخپل مرض الموت كي ،د قرضونو، وَعَلَيْهِ دُيُونٌ فِي صِحَّتِهِ او حال دادې.چه په ده باندې څه پور دده د صحت هم دى. وَدُيُونٌ لَزِمَتْهُ فِي مَرَضِهِ بِأَسْبَابٍ مَعْلُومَةٍ او څه پور داسې دى.كومې چې په ده باندې دده په مرض الموت كي په معلومو اسبابو سره لازم شوى دى. فَدَيْنُ الصِّحَّةِ وَالدَّيْنُ الْمَعْرُوفُ الْأَسْبَابِ مُقَدَّمٌ نودا د صحت او د معلومو اسبابو قرضونه به مقدم وى.

**تشريح:** بيمار باندې چې كوم دين دده د صحت د زمانې وى.كه د ګواهانو په ذريعه سره معلوم وى.او كه په اقرار سره، كه د وارث دين وى.اوكه د يو اجنبى (پردى كس).د عين اقرار وى.اوكه د دين وى.بهرحال د صحت د حالت دين مطلقا، او كوم دين چې په ده باندې په مرض الموت كي په معلومو اسبابو سره لازم شوې وى.هغه دواړه به زموږ په نيز، هغه دين باندې مقدم وى.د كوم چې مريض پخپل مرض الموت كي اقرار كړې دې.سفيان ثورى او ابراهيم نخعى رحمهما الله هم ددې قائل دى.اود قاضى حنبلى رحمه الله په قول د امام محمد رحمه الله د مذهب قياس هم دادې.نوكه دده انتقال اوشى.نو مخكې به دده د تركې (مال ميراث) نه د صحت دين او هغه دين اداكوى.كوم چې په مرض الموت كي معلومو اسبابو سره لازم شوې دې.ددې نه روسته چې كوم مال پاته پاتې شى.د هغې څخه به هغه پور اداكوى.د كوم چې هغه په مرض الموت كي اقرار كړې دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: امام شافعى رحمه الله فرمائى. دَيْنُ الْمَرَضِ وَدَيْنُ الصِّحَّةِ يَسْتَوِيَانِ چې د بيمارئ او د صحت پور برابر دى. لِاسْتِوَاءِ سَبَبِهِمَا ددې د اسبابو د برابر كيدلو په وجه، وَهُوَ الْإِقْرَارُ الصَّادِرُ عَنْ عَقْلٍ وَدِينٍ، اوهغه اقرار دې.كوم چې عقل او دين سره صادر شوې دې. وَمَحَلُّ الْوُجُوبِ الذِّمَّةُ الْقَابِلَةُ لِلْحُقُوقِ اود وجوب محل هغه ذمه ده.كوم چې د حقوقو قابل ده. فَصَارَ كَإِنْشَاءِ التَّصَرُّفِ مُبَايَعَةً وَمُنَاكَحَةً نودا خپل منځ كي د بيع او نكاح د انشاء د تصرف پشان شو.

**تشریح:** د امام شافعی ،امام مالك، ابوثور ، ابوعبیده، امام مزنی ، او په قول د ابوعبیده د مدینې د خلګو په نیز د صحت دین اود مرض دین دواړه برابر دی.ځکه چې ددې دواړو سبب یعنی اقرار کوم چې عقل او دین سره صادر شوې دې.اود پور د وجوب محل کوم چې د ذمې د حقوقو قابل دې.برابر دی.نودا داسې شوه.لکه چې ده په حالت د مرض کې د بیع او نکاح څه خپل تصرف پیدا کړو.چه د مرض د حالت نکاح اود صحت د حالت نکاح برابر ده.نو لکه څنګه چې دا انشاء برابر ده.دغه ډول د اقرار اخبار به هم برابر وی.

ؔ تنبیه*علامه مرغینانی رحمه الله د امام شافعی رحمه الله د دلیل کوم تقریر کړې دې.په هغې باندې دا اعتراض کیږی.کوم چې د صحت په حالت کې د اقرار په ذریعه ثابت وی.نود دلیل تقریر داسې کیدل پکار دی. «ر عند الشافعی الدّین فی المرض یساوی الدین فی الصحة لإستواء السبب المعلوم والإقرار»
شوې دې.چه دا د دعوه مطابق نه دې.ځکه چې په ذکر شوی دلیل سره صرف د هغه دین د مساواتو افاده

جواب*دادې.چه هرکله د ذکرشوی دلیل نه ددې خبرې افاده اوشوه.چه د مرض دین د هغه دین برابر دې.کوم چې د صحت په حالت کې اقرار سره ثابت وی.نو ددې نه دا افاده هم اوشوه.چه مذکوره دین د هغه دین برابر هم دې.کوم چې بالمعائنه ثابت وی.ځکه چې ددې دواړو دینونو په منځ کې د فصل (او فرق) څوك هم قائل نه دی.

## د احنافو رحمهم الله دلیل

> وَلَنَا زمونږ دلیل دادې.أَنَّ الْإِقْرَارَ لَا يُعْتَبَرُ دَلِيلًا چې اقرار معتبر نه وی.په دلیل کیدلو سره، إِذَا كَانَ فِيهِ إِبْطَالُ حَقِّ الْغَيْرِ،کله چې په دې کې حق باطلول وی.وَفِي إِقْرَارِ الْمَرِيضِ ذَلِكَ اود مریض په اقرار کې دا خبره موجود ده.لِأَنَّ حَقَّ غُرَمَاءِ الصِّحَّةِ تَعَلَّقَ بِهَذَا الْمَالِ اسْتِيفَاءً،ځکه چې د صحت د قرضخواهانو حق د استیفاء په لحاظ دې مال سره تړلې شوې (او متعلق) دې.

**تشریح:** زمونږ دلیل دادې.چه بې شکه اقرار دلیل دې.خو ددې دلیل کیدل، هغه وخت معتبر وی.کله چې په دې سره د بل حق نه باطلیږی.اوکه دا د غیر حق باطلوی.نو معتبر نه وی.لکه که یوکس یو شئ رهن کیخودلو.یا ئې په اجاره باندې ورکړو.بیا ئې اقرار اوکړو.چه دا شئ دغیر دې.نود مرتهن او مستاجر په حق کې دده اقرار نه نافذ کیږی.ځکه چې دې شئ سره د هغوی حق متعلق شوې دې.اود بیمار په اقرار کې دا خبره موجود ده.یعنی د بل حق باطلیږی.ځکه چې د صحت د قرضخواهانو حق دده مال سره متعلق شوې دې.

> وَلِهَذَا مُنِعَ مِنَ التَّبَرُّعِ وَالْمُحَابَاةِ په دې وجه بیمار د تبرع او محابات (احسان،او صدقه کولو) نه منع کړې شوې دې.إِلَّا بِقَدْرِ الثُّلُثِ خوپه اندازه د دریمې برخې (حصې) د مال (نه اجازت دې).

**تشریح:** د قرضخواهانو د حق متعلق کیدلو په وجه مریض ته د تبرع او محابات (احسان) ممانعت دې.یعنی هغه د ترکه د دریمې برخې (حصې) د مال نه زیات داسې کار نشی کولې.کوم چې دده په ذمه واجب نه وی.لکه وصیت او هبه وغیره.او محابات (صدقه) هم نشی کولې.چه مال ددې د قیمت نه په کم باندې دچا په لاس خرڅ کړی.ځکه چې دا اصلی اړتیا نه دې.

ؔ سوال*په حالت د مرض کې وارث لپاره اقرار صحیح دې.حالانکه په دې سره د نورو وارثانو حق باطلیږی.بیا د مرض په حالت کې د دین اقرار ولې صحیح نه دې؟

جواب*وارث چې د کوم مال مستحق کیږی.هغه په نسب او مرګ دواړو سره کیږی.نو په دې کې چې کوم روسته اوموندې شی.استحقاق به هم هغه اړخ ته منسوب وی.او هغه مرګ دې.آیا نه ګورې.چه د مرګ نه وړاندې د نسب ګواهی ورکونکې، که د مرګ نه روسته ګواهئ نه رجوع اوکړی.او حال داچه مشهود له مال واخستلو.نو ګواهان خلګ به د هیڅ شئ ضامن نه وی.په خلاف د دین،چه ددې وجوب د مرګ په وجه نه دې.د دین د اقرار په وجه واجبیږی.(مبسوط، اسرار)



## د امام شافعی رحمه الله د استشهاد جواب

> بِخِلَافِ النِّكَاحِ په خلاف د نکاح، لِأَنَّهُ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ وَهُوَ بِمَهْرِ الْمِثْلِ ،ځکه چې دا داصلی ضرورتونو څنې دې.د مهرمثل په بدله کې ، وَبِخِلَافِ الْمُبَايَعَةِ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ او په خلاف په برابر قیمت باندې خپل منځ کې د بیع، لِأَنَّ حَقَّ الْغُرَمَاءِ تَعَلَّقَ بِالْمَالِيَّةِ ځکه چې د قرضخواهانو حق مالیت سره تړلې دې. لَا بِالصُّورَةِ صورت سره نه دې.

**تشریح:** د امام شافعی رحمه الله د استشهاد خواب دې.چه نکاح سره هیڅ الزام نه قائمیږی.ځکه چې نکاح د مهرمثل په بدله کې د انسان په اصلی اړتیا کې داخل ده.ددې دلیل دادې.چه د نفس د بقاء مدار په تناسل باندې دې. او د تناسل طریقه نکاح ده.او انسان په حوائج اصلیه کې د خپل مال صرف کاوه نه دې منع کړې شوې.دغه ډول د مساوی قیمت په عوض مبایعت سره هم الزام نشی قائمیدلې.ځکه چې د قرضخواهانو حق مالیت سره تړلې دې.صورت سره نه دې تړلې.اود مساوی قیمت په عوض مبایعت کې مالیت پاته دې.نو په دې کې د غرماء (قرضخواهانو) د حق ابطال نه دې.(ځکه چې د مال په عوض برابر مال ملاؤ شو).بلکه د یو محل نه دوهم محل اړخ ته ددوی دحق تحویل دې.،،و للبدل حکم البدل،،

> وَفِي حَالَةِ الصِّحَّةِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِالْمَالِ اود صحت په حالت کې ددوی حق مال سره متعلق شوې نه دې. لِقُدْرَتِهِ عَلَى الْاِكْتِسَابِ هغه ته په ګټه باندې د قدرت کیدلو په وجه، فَيَتَحَقَّقُ التَّثْمِيرُ نو په مال کې زیاتوالې متحقق وو. وَهَذِهِ حَالَةُ الْعَجْزِ اودا حالت د عجز دې. وَحَالَتَا الْمَرَضِ حَالَةٌ وَاحِدَةٌ اود بیمارئ دواړه حالتونه یو شان دی. لِأَنَّهُ حَالَةُ الْحَجْرِ ،ځکه چې دا معذورئ حالت دې. بِخِلَافِ حَالَتَي الصِّحَّةِ وَالْمَرَضِ په خلاف د صحت اود مرض د دواړو حالتونو، لِأَنَّ الْأُولَى حَالَةُ إِطْلَاقٍ ځکه چې ړومبې حالت اطلاق دې. وَهَذِهِ حَالَةُ عَجْزٍ فَافْتَرَقَا اودا حالت د عجز دې.،،فافترقا،، (نو توپیر واضح شو)

**تشریح:** د سوال خواب دې.سوال دا کیدای شی.چه ستاسو د قول مطابق کله چې د مدیون مال سره د قرضخواهانو حق متعلق شو.نود صحت د حالت اقرار هم صحیح کیدل پکار نه دې.ځکه چې په دې کې هم دده اقرار د غیر د حق ابطال ته متضمن دې.حالانکه دا بالاجماع جائز دې.حاصل د خواب دادې.چه د صحت په حالت کې د قرضخواهانو حق د مدیون مال سره نه دې متعلق شوې.ځکه چې د صحت په حالت کې مدیون ته د ګټې (او مزدورئ) کاوه قدرت حاصل وو.اود مزدورئ (ګټې) په ذریعه سره مال کې د زیاتوالی امکان وو.او اوس د عاجزئ حالت دې.چه هغه اوس د مرګ ددې بیمارئ په وجه نشی ګټلې.نو په دې حالت کې به د قرضخواهانو حق دده مال سره متعلق وی.چه ددوی حق ضائع نشی.

ؔ ممکن ده چې څوك دا اووائی.چه ښه که څوك بیمار د بیمارئ په حالت کې د پور دوباره اقرار اوکړی.نو صحیح کیدل پکار نه دی.ځکه چې وړاندې دمقرله حق دده مال سره متعلق شو.نو په ،، حالتا المرض،، کې ددې خواب دې.چه د بیمارئ د پیل او انتهاء دواړه حالتونه ګویا چې یو دی.ځکه چې د مرض په حالت کې هغه معذور دې.په خلاف د صحت د حالت،اود مرض د حالت.چه په دې دواړو کې توپیر دې.ځکه چې د صحت په حالت کې خو ده ته مطلقاً اختیار وو.اود مرض په حالت کې دې عاجز دې.نو په دې دواړو حالتونو کې توپیر ښکاره دې.

## د مشهورو سببونو والا قرضونو د مقدم کیدلو وجه

> وَإِنَّمَا تُقَدَّمُ الدُّيُونُ الْمَعْرُوفَةُ الْأَسْبَابِ او د معلومو سببونو والا پور به په دې وجه مقدم کولې شی. لِأَنَّهُ لَا تُهْمَةَ فِي ثُبُوتِهَا چې ددې په ثبوت کې هیڅ تهمت نشته. إِذِ الْمُعَايَنُ لَا مَرَدَّ لَهُ،ځکه چې د سترګو د کتلی شوی شئ رد کاوه ګنجائش نشته. وَذَلِكَ مِثْلُ بَدَلِ مَالٍ مَلَكَهُ اودا پشان د هغه د مال د بدل دې.د کوم چې دې مالك وی. أَوِ اسْتَهْلَكَهُ یا ئې دا ضائع کړو. وَعُلِمَ وُجُوبُهُ بِغَيْرِ إِقْرَارِهِ او ددې وجوب د اقرار نه علاوه نه معلوم شو. أَوْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً بِمَهْرِ مِثْلِهَا،یا دې یوې ښځې سره د هغې د مهر مثل په عوض نکاح اوکړله. وَهَذَا الدَّيْنُ مِثْلُ دَيْنِ الصِّحَّةِ دا قرضه

هم د صحت د دین پشان ده. لَا يُقَدَّمُ أَحَدُهُمَا عَلَى الْآخَرِ لِمَا بَيَّنَّا، هیڅ یو به په بل باندې نشی مقدم کولې. د تیرشوی دلیل مطابق.

**تشریح:** بیا د بیمارئ د حالت داسې پور چې ددې اسباب معلوم دی. مثلاً د بیع په وجه د یو مبیع ثمن، یا د نکاح په وجه د ښځې مهر لازم شوې دې. نو ددې د مقدم کیدلو وجه داده. چه ددې په ثبوت کې د تهمت هیڅ امکان نشته. ځکه چې د کتلی شوی شئ د رد کاوه ګنجائش نه وی. ددې مثال دادې. چه قرضه د داسې مال په وجه لازم شوه. کوم مال چې ده پخپل ملکیت کې اخستې دې یا ده دچا مال ضائع کړو. او ددې وجوب د اقرار نه علاوه په معائنه یا د ګواهئ په دلیل سره معلوم شو. یا ده د یوې ښځې سره دهغې په مهرمثل باندې نکاح اوکړله. نو داسې پور د صحت د قرضو برابر دی. کوم یو ته به په بل باندې ترجیح نه وی. ځکه چې ددې په ثبوت کې هیڅ تهمت نشته.

وَلَوْ أَقَرَّ بِعَيْنٍ فِي يَدِهِ لِآخَرَ که اقرار اوکړو. بیمار د بل دپاره، د داسې مال عین، کوم چې دده په قبضه کې دې. لَمْ يَصِحَّ فِي حَقِّ غُرَمَاءِ الصِّحَّةِ نو صحیح به نه وی. د صحت د قرضخواهانو په حق کې. لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِهِ، ځکه چې ددوی حق دې مال سره متعلق شوې دې.

**تشریح:** د بیمار په قبضه کې یو معین مال دې. چه ددې په اړه کې هغه اقرار اوکړو چه دا د فلانی سړی دې. د صحت د قرضخواهانو په حق کې دده دا اقرار صحیح نه دې. (د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نیز صحیح دې). ځکه چې دې مال سره ددوی حق متعلق شوې دې.

وَلَا يَجُوزُ لِلْمَرِيضِ أَنْ يَقْضِيَ دَيْنَ بَعْضِ الْغُرَمَاءِ دُونَ الْبَعْضِ؛ او جائز نه دی بیمار دپاره، د بعض قرضخواهانو پور خلاصول، لِأَنَّ فِي إِيثَارِ الْبَعْضِ إِبْطَالَ حَقِّ الْبَاقِينَ، ځکه چې بعضو ته ترجیح ور کاوه کې د پاته قرضخواهانو حق باطلول دی. وَغُرَمَاءُ الصِّحَّةِ وَالْمَرَضِ فِي ذَلِكَ سَوَاءٌ؛ او په دې کې د صحت او بیمارئ قرضخواهان برابر دی. إِلَّا إِذَا قَضَى مَا اسْتَقْرَضَ فِي مَرَضِهِ خودا چې داسې پور خلاص کړی. کوم چې ده د مرض په حالت کې اخستې دې. أَوْ نَقَدَ ثَمَنَ مَا اشْتَرَى فِي مَرَضِهِ یا د هغه شئ ثمن خلاص کړی. کوم چې ده د بیمارئ په حالت کې اخستې دې وَقَدْ عُلِمَ بِالْبَيِّنَةِ او په ګواهانو سره معلوم شوې دې.

**تشریح:** د مذکوره بیمار لپاره دا خبره جائز نه ده. چه دې د بعض قرضخواهانو قرضه اداکړی. اود بعضو ادا نکړی. ځکه چې په داسې کاوه کې د نورو حق ضائع کول دی. که قرضخواه د صحت وی. او که د بیمارئ وی. البته که د بیمارئ په حالت کې هغه پور خلاص کړو. کوم ئې چې په حالت د بیمارئ کې اخستې وو. یا ئې د هغه مبیع ثمن اداکړو. کوم ئې چې په حالت د بیمارئ کې اخستې وو. اودا خبره په ګواه سره ثابته شوه. نودا جائز دې. «لأنه لم يبطل حق الغرماء بل إنما حوله من محل إلى محل يعدله».

## د مقدم قرضو اداکولو نه روسته د مرض الموت حالت د قرضو اداکول

قَالَ (فَإِذَا قُضِيَتْ) او هرکله ئې چې اداکړلې. يَعْنِي الدُّيُونَ الْمُقَدَّمَةَ یعنی هغه پور کوم چې مقدم دی. (وَفَضَلَ شَيْءٌ) او څه مال بچ شو (يُصْرَفُ إِلَى مَا أَقَرَّ بِهِ فِي حَالَةِ الْمَرَضِ) نو هغه به خرج کولې شی. په هغې کې د کوم چې ده د بیمارئ په حالت کې اقرار کړې دې. لِأَنَّ الْإِقْرَارَ فِي ذَاتِهِ صَحِيحٌ، ځکه چې اقرار فی ذاته صحیح دې. وَإِنَّمَا رُدَّ فِي حَقِّ غُرَمَاءِ الصِّحَّةِ خود صحت د قرضخواهانو په حق کې منع کړې شوې وو. فَإِذَا لَمْ يَبْقَ حَقُّهُمْ هرکله چې د هغوی حق پاته پاتې نشو. ظَهَرَتْ صِحَّتُهُ. نود اقرار صحت ښکاره شو.

**تشریح:** هرکله چې مخکنی دیون یعنی د صحت دیون او هغه پور کومې چې د بیمارئ په حالت کې په معلومو اسبابو سره معلومې شوې دی. خلاصې کړې شوې. اود ترکې نه څه مال بچ پاتې شو. نو دا به د پور ادا کاوه کې خرج کولې شی. د کومو چې ده د بیمارئ په حالت کې اقرار کړې



دې. ځکه چې ده د بیمارئ په حالت کې کوم اقرار کړې وو. هغه پخپله صحیح وو. «لصدوره عن أهله في محله» خود صحت د قرضخواهانو د حق په وجه دا اقرار منع کړې شوې وو. او اوس ددوی حق پاته پاتې نشو. نود بیمارئ د حالت اقرار به ښکاره کیږی ،، لزوال المانع،،.

قَالَ (فَإِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دُيُونٌ فِي صِحَّتِهِ) که په مریض باندې د صحت د حالت پور نه وی. (جَازَ إِقْرَارُهُ) نو دده اقرار به صحیح وی. لِأَنَّهُ لَمْ يَتَضَمَّنْ إِبْطَالَ حَقِّ الْغَيْرِ ځکه چې دا حق د غیر باطلولو ته متضمن نه دې. وَكَانَ الْمُقَرُّ لَهُ أَوْلَى مِنَ الْوَرَثَةِ او مقرله به اولی (او راجح) وی. په نسبت د وارثانو.

**تشریح:** که د مذکوره بیمار په ذمه د صحت د حالت هیڅ قرضه نه وی. نود بیمارئ په حالت کې به دده اقرار کول جائز وی. اګرچه هغه د واړه مال اقرار اوکړی. ځکه چې اوس دده اقرار دغیر حق باطلولو ته متضمن نه دې. او په دې مال کې به د وارثانو په نسبت مقرله اولی (او راجح) وی. ځکه د حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد دې. «إذا أقر المريض بدين جاز ذالك عليه في جميع تركته» (و الأثر في مثله كالخبر).

لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: د حضرت عمر رضی الله عنه د فرمان په وجه، إِذَا أَقَرَّ الْمَرِيضُ بِدَيْنٍ چې کله اقرار اوکړو. بیمار د یوې قرضې، جَازَ ذَلِكَ عَلَيْهِ فِي جَمِيعِ تَرِكَتِهِ([1]) نو په ده باندې دا (اداکول) جائز دی. دده په کُل ترکه کې. وَلِأَنَّ قَضَاءَ الدَّيْنِ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ او ځکه چې پور خلاصول، د اصلی ضرورتونو څخې دې. وَحَقُّ الْوَرَثَةِ يَتَعَلَّقُ بِالتَّرِكَةِ او د وارثانو حق ترکه سره متعلق کیږی. بِشَرْطِ الْفَرَاغِ په دې شرط سره، چه هغه فارغ وی. وَلِهَذَا تَقَدَّمَ حَاجَتُهُ فِي التَّكْفِينِ په دې وجه د مړی د تکفین اړتیا مقدم کولې شی.

**تشریح:** ددې اثر اړه کې علامه زیلعی رحمه الله فرمائیلی دی. چه غریب دې. اوپه مبسوط خواهرزاده وغیره کې دا دحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه نقل دی. د حضرت عمر رضی الله عنه نه نه دی. عقلی دلیل دادې. چه پور اداکول په حوائج اصلیه کې داخل دی. چه قرضه د جنت په دخول کې مانع نه وی. «قال ﷺ الدين حائل بينه و بين الجنة» اود وارثانو کوم حق چې ترکې سره متعلق وی. هغه هم په دې شرط دې. چه د مړی ترکه دده د اصلی ضروریاتو نه فارغ وی. په دې وجه د مړی تکفین او تدفین د وارثانو په حق باندې مقدم کولې شی.

## وارث لپاره د بیمار د اقرار حکم

قَالَ (وَلَوْ أَقَرَّ الْمَرِيضُ لِوَارِثِهِ) وکه اقرار اوکړو، بیمار د خپل وارث لپاره (لَا يَصِحُّ) نو صحیح به نه وی. (إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهُ فِيهِ بَقِيَّةُ الْوَرَثَةِ) خودا چې په دې کې پاته وارثان دده تصدیق اوکړی.

**تشریح:** که بیمار دخپل وارث لپاره دڅه دین یا عین اقرار اوکړو. نو اقرار صحیح نه دې. البته که پاته وارثان هم دده تصدیق اوکړی. امام احمد، ابراهیم نخعی، سفیان ثوری رحمهم الله شعبی، حکم، قاضی شریح، یحي انصاری، قاسم بن سلام، ابو هاشم، سالم، ابن اذینه رحمهم الله او په یو قول کې امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دی. خو ددوی اصح قول دادې. چه اقرار صحیح دې. امام مالک رحمه الله فرمائی. چه کوم ځائې کې د تهمت خطره نه وی. هلته صحیح دې. ګنې باطل دې. لکه مثلاً د یوکس یوه لور او یو د اکا (تره) ځوئې دې. بیمار د خپلې لور لپاره اقرار اوکړو. نو صحیح به نه وی. ځکه چې د تهمت امکان دې. اوکه د اکا (تره) د ځوی لپاره ئې اقرار اوکړو. نو صحیح به وی. په شوافعو کې رویانی هم دا اختیار کړې دې. د حسن بن صالح نه نقل دی. چه صرف د خپلې ښځې د مهر اقرار صحیح دې. پاته باطل دې.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ: امام شافعی رحمه الله پخپل یو قول کې فرمائی. يَصِحُّ چې صحیح دې. لِأَنَّهُ إِظْهَارُ حَقٍّ ثَابِتٍ ځکه چې دا یو ثابت حق ښکاره کول دی. لِتَرَجُّحِ جَانِبِ الصِّدْقِ فِيهِ، د رشتیاؤ اړخ راجح کیدلو په

[1] غربه الزیلعی رحمه الله (نصب الرایة ۴/۲۵۷)_

وجه، وَصَارَاودا داسې شوه. كَـالْإِقْرَارِلِأَجْنَبِيٍّ لکه د اجنبي لپاره اقرار كول. وَبِوَارِثٍ آخَرَيا د بل وارث دپاره، وَبِوَدِيعَةٍ مُسْتَهْلَكَةٍ لِلْوَارِثِ.يا د وارث د ضائع شوى وديعت اقرار كول.

تشريح: د امام شافعي رحمه الله دليل دادې.چه د بيمار اقرار كول، د يو ثابت حق ښكاره كول دى.ځكه چې دې كي بدلالت حال سره د صدق اړخ راجح دې.ځكه چې ښكاره هم داده.چه بيمار به په دې حالت كي دروغ نه وائي.كله چې دا د حقوقو د موندلو حالت دې.نو لكه څنګه چې اجنبي لپاره اقرار صحيح دې.دغه ډول به وارث لپاره هم صحيح وي.او دا داسې شوه.لكه چې دې د يوسړي په نسبت د وارث كيدلو، يا د يو وارث د وديعت ښكاره كاوه اقرار اوكړي.چه دا اقرار صحيح دې.

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ زمونږ دليل د نبي كريم ﷺ ارشاد دې. {لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ چې نه د وارث لپاره وصيت دې. وَلَا إِقْرَارَ لَهُ بِالدَّيْنِ} (١) "او نه دده لپاره د پور اقرار شته.

تشريح: زمونږ دليل د سنن دار قطني روايت دې. ﴿قال رسول الله ﷺ لا وصية لوارث ولا إقرار له بدين﴾

❓سوال: دا روايت مرسل دې؟ ځواب: اول خو حافظ ابو نعيم په تاريخ اصبهان كي د اشعث بن شداد خراساني لاندې دې ته مسند ونيلى دى. و سنده هكذا...... ﴿حدثنا أبو محمد بن حيان ثنا أبو عبدالرحمن المقدمي ثنا أشعث بن شداد الخراساني ثنا يحي بن يحي ثنا نوح بن دراج عن أبان تغلب عن جعفر بن محمد عن أبيه عن جابر﴾ اوكه مرسل اومنلي شي.لكه څنګه چې د اكثرو رائې هم داده.بيا هم مرسل صحيح زمونږ په نيز حجت دې.

❓سوال: ابن معين د نوح بن دراج تكذيب كړې دې.امام ابوداؤد فرمائي.چه دې دروغجن دې.حديثونه د خانه جوړوي.د ابن حبان او حاكم بيان دادې.چه دې د ثقاتو نه هم موضوعي روايات نقل كوي.بيا مرسل مذكور صحيح څنګه شو؟

ځواب: جعفر فريابي د محمد بن عبدالله بن نمير نه ددې توثيق رانقل كړې دې.شيخ ابوزرعه فرمائي.چه دې د كوفي قاضي وو.او ماته اميد دې.چه په دې كي هيڅ باك نشته.د ابن عدى رحمه الله قول دې.چه دې ﴿مكثر في الحديث﴾ خو نه دې.خو دده حديثونه ليكلې شي.معلومه شوه.چه نوح بن دراج مختلف فيه دې. ﴿والإختلاف غير مضر عندنا﴾ ( إعلاء السنن).

وَلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ حَقُّ الْوَرَثَةِ بِمَالِهِ فِي مَرَضِهِ او ځكه چې دده په بيمارئ كي د وارثانو حق دده مال سره متعلق شو. وَلِهَذَا يُمْنَعُ مِنَ التَّبَرُّعِ عَلَى الْوَارِثِ أَصْلًا، په دې وجه دې په وارث باندې د تبرع كاوه نه بالكل منع كړې شو. فَفِي تَخْصِيصِ الْبَعْضِ بِهِ إِبْطَالُ حَقِّ الْبَاقِينَ، نو په اقرار سره د بعض په تخصيص سره د پاته وارثانو حق باطلول دى. وَلِأَنَّ حَالَةَ الْمَرَضِ حَالَةُ الْإِسْتِغْنَاءِ او ځكه چې د بيمارئ حالت د استغناء حالت دې. وَالْقَرَابَةُ سَبَبُ التَّعَلُّقِ، او قرابت د تعلق سبب دې. إِلَّا أَنَّ هَذَا التَّعَلُّقَ لَمْ يَظْهَرْ فِي حَقِّ الْأَجْنَبِيِّ خودا تعلق د اجنبي په حق كي نه دې ښكاره شوې. لِحَاجَتِهِ إِلَى الْمُعَامَلَةِ فِي الصِّحَّةِ، د صحت په حالت كي ده ته د معاملې د اړتيا كيدلو په وجه. لِأَنَّهُ لَوْ انْحَجَرَ عَنِ الْإِقْرَارِ بِالْمَرَضِ ځكه كه د بيمارئ په وجه دا اقرار محجور (منع) كړې شي. يَمْتَنِعُ النَّاسُ عَنِ الْمُعَامَلَةِ مَعَهُ، نو خلګ به دده سره د معامله كاوه نه منع شي. وَقَلَّمَا تَقَعُ الْمُعَامَلَةُ مَعَ الْوَارِثِ او وارث سره معامله ډيره كمه كيږي. وَلَمْ يَظْهَرْ فِي حَقِّ الْإِقْرَارِ بِوَارِثٍ آخَرَ او د بل د وارث كيدلو د اقرار په حق كي هم ښكاره نشو. لِحَاجَتِهِ أَيْضًا، ځكه چې ده ته ددې هم اړتيا دې. ثُمَّ هَذَا التَّعَلُّقُ حَقُّ بَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ، بيا دا تعليق د پاته وارثانو حق دې. فَإِذَا صَدَّقُوهُ كله چې دوى ددې تصديق اوكړو. فَقَدْ أَبْطَلُوهُ نو خپل حق ئې پخپله باطل كړو. فَيَصِحُّ إِقْرَارُهُ قَالَ نو د بيمار اقرار به صحيح كيږي.

تشريح: زمونږ عقلي دليل دادې.چه د بيمار مال سره د ټولو وارثانو حق تړلې شوې دې.په دې وجه ده ته د

١) من حديث جعفربن محمدعن أبيه أخرجه الدارقطني في سننه في كتاب الوصايا (١٥٢\٤) رقم ١٢)_



وارثانو په حق كي د تحفې يا وصيت وغيره احسان كاوه نه ممانعت دې.او د بيمارئ حالت د مال نه د بې نيازئ حالت دې.ځكه چې د مرګ نشانيانې ښكاره كيدلو سره واړه اميدونه ختميږي.او دده مال سره د تعلق متعلق كيدلو سبب قرابت دې.خودا تعلق د اجنبي په حق كي نه دې ښكاره شوې، (بلكه هغه لپاره اقرار صحيح دې) ځكه چې د صحت په حالت ده ته د معاملاتو اړتيا دې.او د وارثانو سره معاملات واقع كيدل ډير كم كيږي.زيات تر اجنبي خلګو سره كيږي.كه اجنبي لپاره دده اقرار صحيح او نه منلې شي.نو خلګ به دده سره معاملات نه كوي.او دده د ضرورياتو دروازه به بنده پاتې شي.او مذكوره تعلق د دوهم سړي په نسبت د وارث كيدلو د اقرار په حق كي هم ښكاره نشو.ځكه چې انسان ته ددې هم اړتيا دې.چه دده د نسل واړه وارثان پاته پاتې شي.نود نسب اقرار يا دده ضروريات د أصليه څنې شو.بيا مذكوره تعلق د پاته وارثانو حق دې.او هركله چې دوى ددې تصديق اوكړو.نو اقرار معتبر شو.ځكه چې د اقرار نه معتبر كيدل، هم ددوى دحق په وجه وو.

{وَإِذَا أَقَرَّ لِأَجْنَبِيٍّ} وكه اقرار ئې اوكړو.اجنبي دپاره. {جَازَ} نو جائز دې. {وَإِنْ أَحَاطَ بِمَالِهِ} لِمَا بَيَّنَّا، اګرچه دده پوره مال راګير كړي. وَالْقِيَاسُ او قياس دادې. أَنْ لَا يَجُوزَ إِلَّا فِي الثُّلُثِ چې جائز نه وي.مګر په دريمه برخه مال كي لِأَنَّ الشَّرْعَ قَصَرَ تَصَرُّفَهُ عَلَيْهِ.ځكه چې شريعت دده تصرف صرف دريمې برخه پورې پاته ساتلې دى. إِلَّا أَنَّا نَقُولُ: خو مونږ دا وايو. لَمَّا صَحَّ إِقْرَارُهُ فِي الثُّلُثِ چې هركله په دريمه برخه كي دده اقرار صحيح شو. كَانَ لَهُ التَّصَرُّفُ فِي ثُلُثِ الْبَاقِي نو په پاته دريمه برخه كي به ده ته د تصرف حق وي. لِأَنَّهُ الثُّلُثُ بَعْدَ الدَّيْنِ ځكه چې د پور نه روسته هم دريمه برخه ده. ثُمَّ بيا ددې په پاته دريمه برخه كي. وَثُمَّ حَتَّى يَأْتِي عَلَى الْكُلِّ بيا دغه ډول هغه پورې چې اقرار واړه مال راګير كړي.

تشريح: كه مريض د يو اجنبي لپاره اقرار اوكړو.نو اقرار جائز دې.اګرچه دده واړه مال راګير كړي.ځكه چې د قرضونو اداكول د ضروريات اصليه څنې دى.اګرچه قياس هم دا غواړي.چه د دريمې برخې (حصې) نه علاوه كي جائز نه وي.ځكه چې شريعت دده تصرف صرف دريمې برخې (حصې) پورې محدود ساتلې دې. خو مونږ استحساناً وايو.چه هركله دده اقرار په دريمه برخه كي صحيح شو.نو په پاته دريمه برخه كي به دده تصرف جائز وي.ځكه چې د پور نه روسته هم دريمه ده.ددې نه روسته بيا په پاته كي به هم جائز وي.او دغه ډول ترهغه وخته پورې چې اقرار پوره مال راګير كړي.

### د اجنبي لپاره اقرار كولو نه روسته د نسب دعوى كول

قَالَ {وَمَنْ أَقَرَّ لِأَجْنَبِيٍّ} چاچه اجنبي لپاره اقرار اوكړو. {ثُمَّ قَالَ:} بيا ئې اووئيل. {هُوَ ابْنِي چې} دا زما ځوئې دې. {ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ} نو دده څخه به دهغه نسب ثابت وي. {وَبَطَلَ إِقْرَارُهُ،} او دهغه لپاره به دده اقرار باطل وي. {فَإِنْ أَقَرَّ لِأَجْنَبِيَّةٍ} وكه د اجنبيه (ښځې) لپاره ئې اقرار اوكړو. {ثُمَّ تَزَوَّجَهَا} بيا ئې هغې سره نكاح اوكړله. {لَمْ يَبْطُلْ إِقْرَارُهُ لَهَا} نو هغې لپاره به دده اقرار باطل نه وي. وَوَجْهُ الْفَرْقِ وجه د توپير داده. أَنَّ دَعْوَةَ النَّسَبِ تَسْتَنِدُ إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ چې د نسب دعوه د نطفې د قرار وخت اړخ ته منسوب كيږي. فَتَبَيَّنَ نودا ښكاره شوه. أَنَّهُ أَقَرَّ لِابْنِهِ چې ده د خپل ځوى لپاره اقرار كړې دې. فَلَا يَصِحُّ وَلَا كَذَلِكَ الزَّوْجِيَّةُ او زوجيت داسې نه دې. لِأَنَّهَا تَقْتَصِرُ عَلَى زَمَانِ التَّزَوُّجِ ځكه چې دا خو د نكاح وخته پورې محدود وي. فَبَقِيَ إِقْرَارُهُ لِأَجْنَبِيَّةٍ.نو دده اقرار اجنبيه لپاره پاتې شو.

تشريح: بيمار د يو اجنبي لپاره اقرار اوكړو.او بيا د هغه د نسب مدعي شو.نو د هغه نسب به ثابت وي.او اقرار به باطل وي.په دې شرط چې ددې اجنبي نسب معلوم نه وي.او د مقر تصديق اوكړي.او د تصديق كاوه لياقت (او قابليت) لري. ﴿خلافاً للشافعي رحمه الله في الأصح و مالك إذا لم يتهم......﴾ اوكه بيمار د يوې اجنبيه ښځې لپاره اقرار كاوه نه روسته هغې سره نكاح اوكړي.نو اقرار به صحيح وي.د امام زفر رحمه الله په نيز به

صحیح نه وی.زموږ په نیز وجه د توپیر داده.چه د نسب دعوه د علوق ( دنطفې د قرار) اړخ ته منسوب کیږی.نو خپل خوی لپاره اقرار شو.او دا جائز نه دې.په خلاف د زوجیت ( او دنکاح)،چه دا نکاح وخت اړخ ته منسوب کیږی.نو اقرار اجنبیه لپاره شو.اودا صحیح دې.خوکه اجنبیه لپاره ئې وصیت اوکړو.یا ئې څه شئ تحفه کړو.بیا ئې هغې سره نکاح اوکړله.نو وصیت او هبه به صحیح نه وی.ځکه چې وصیت بعد الموت تملیك وی.او د مرګ نه روسته ښځه دده وارثه ده.نو وصیت په جائز نه وی.او په مرض الموت کې تحفه د وصیت په حکم کې کیږی.،،علی ما یأتی بیانه،،

❶ په وصایا جامع صغیر کې دی.که بیمار د خپل خوئی لپاره د پور اقرار اوکړو.په داسې حالت کې چې نصرانی یا غلام دی.بیا هغه اسلام راوړو.یا آزاد شو.ددې نه روسته مذکوره بیمار مړ شو.نو اقرار باطل دې.ځکه چې د اقرار په وخت ددوی په منځ کې د تهمت سبب قائم وو.یعنی هغه قرابت د کوم په وجه چې دې آخرکار وارث شوی دې.اودا ددې خلاف دې.خوك چې اجنبیه لپاره اقرار اوکړی.بیا هغې سره نکاح اوکړی.چه په دې کې د اقرار په وخت د تهمت سبب موجود نه دې.

قَالَ (وَمَنْ طَلَّقَ زَوْجَتَهُ فِي مَرَضِهِ ثَلَاثًا) چاچه خپلې ښځې ته د بیمارۍ په حالت کې درې طلاقونه ورکړل. (ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ) بیا ئې اقرار اوکړو.د هغې د قرضې.او مړ شو (فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنَ الدَّيْنِ وَمِنْ مِيرَاثِهَا مِنْهُ) نو ښځې لپاره به د پور او میراث نه کمتر وی. لِأَنَّهُمَا مُتَّهَمَانِ فِيهِ ځکه چې دوی دواړه په دې فعل کې متهم دي. لِقِيَامِ الْعِدَّةِ د عدت د قیام، وَبَابُ الْإِقْرَارِ مَسْدُودٌ لِلْوَارِثِ او وارثانو لپاره د اقرار دروازه بندیدلو په وجه، فَلَعَلَّهُ أَقْدَمَ عَلَى هَذَا الطَّلَاقِ نو ممکن ده.چه ده په طلاق باندې اقدام ځکه کړې وی. لِيَصِحَّ إِقْرَارُهُ چې ښځې لپاره دده اقرار صحیح شی. لَهَا زِيَادَةً عَلَى مِيرَاثِهَا او دې ته د میراث نه زیاته ملاؤ شی. وَلَا تُهْمَةَ فِي أَقَلِّ الْأَمْرَيْنِ او په دواړو کې کم ملاویدلو کې هیڅ تهمت نشته. فَيَثْبُتُ نودا به ثابتیږی.

**تشریح:** که په مرض الموت کې ئې ښځې ته درې خله طلاق بائن ورکړو.بیا ئې هغې لپاره اقرار اوکړو.نو په میراث او اقرار کې چې کوم کمتر وی.هغه به ښځې ته ملاویږی.ځکه چې دلته کې زوجین په اقرار کې متهم کیدای شی.په دې معنی سره چې د عدت زمانه موجود ده.او د اقرار دروازه بنده ده.نو ممکن ده.چه ده د میراث نه زیات ور کاوه لپاره طلاق باندې اقدام کړې وی.او په کمتر مقدار کې د تهمت امکان نشته.نو کمتر مقدار به ثابت وی.خود مذکوره حکم لپاره دا شرط دې. چې مقر د عدت په مهال کې مړ شوې وی.که د عدت نه روسته مړ شو.نو اقرار به صحیح وی.علامه مرغینانی رحمه الله په ،،لقیام العدة،، سره دې اړخ ته اشاره کړې ده.

تنبیه❀ د مذکور حکم لپاره دا هم شرط دې.چه میره د ښځې په طلب باندې طلاق ورکړې وی.که طلاق د طلب نه بغیر وی.نو ښځې ته به میراث ملاویږی.خومره هم چې ددې په برخه کې راځی.او ددې لپاره به اقرار صحیح نه وی.ځکه چې ښځه خو دده وارثه ده.او ددې میړه زوج فار دې.په جامع، محیط، تبیین وغیره اکثرو کتابونو کې دا شرط ذکر دې.بلکه د هدایه په،، باب طلاق المریض،، کې هم دا شرط صراحت سره تیر شوې دې.حیث قال «و إن طلقها ثلاثاً فی مرضه بأمرها ثم أقر لها بدین و أوصی لها بوصیة فلها الأقل من ذالك ومن المیراث» د لته علامه مرغینانی ، اوصاحب د کافی ، او نورو ډیرو د هدایې شارحینو په مذکوره شرط سره غالباً د ،،کتاب الطلاق،، په تصریح باندې اعتماد کاوه په وجه تعرض نه دې کړې.او شیخ نجم الدین زاهدی چې په شرح مختصر القدوری کې دا وئیلی دی.چه د قدوری په بعضو نسخو او شروحاتو کې چې دا ذکر دی.چه «ومن طلق زوجته فی مرضه ثلاثاً بسؤالها ثم أقر لها بدین» بیا ئې وئیلی دی.چه دا دواړه خایونه صحیح دی.او ددې دواړو حکم دې.نو په دې اړه کې صاحب د نتائج لیکلی دی.چه ما په عامو معتبراتو کې د تتبع ( او لټون) باوجود دا اونه موندل.چه د دواړو حکم یو دې.بلکه کوم ځائې مې هم دا مسئله اوکتله.هغه مې هم په دې شرط سره مقید اوموندله.چه مذکوره حکم هغه وخت دې.کله چې طلاق د ښځې په طلب یا د هغې په



حکم سره وی.

### د نسب په اقرار باندې د مال د اقرار مقدم کیدلو وجه

فصل:

**تشریح:** د مال اقرار ئې په اقرار د نسب باندې ځکه مقدم کړې دی.چه د ړومبی واقع کیدل زیات دی.او کوم چې کثیر ال مهال وی.هغه اهم بالبیان وی.( کوم چې زیات واقع کیږی.د هغې بیان ضروری وی ).او دوهم په خاتله فصل کې د بیانولو وجه داده.چه دا په بعضو شرطونو او احکامو کې منفرد دی.

(وَمَنْ أَقَرَّ بِغُلَامٍ) او چاچه اقرار اوکړو.د داسې هلك په نسبت، يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ چې دده په شان دده نه پیدا کیدای شی. وَلَيْسَ لَهُ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ ود هغه کوم مشهور نسب نه وی. أَنَّهُ ابْنُهُ چې دا زما خوئی دې. وَصَدَّقَهُ الْغُلَامُ و هلك دده تصدیق اوکړو. ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نو مقر څخه به دده نسب ثابتیږی. وَإِنْ كَانَ مَرِيضًا) اګرچه هغه بیمار وی. لِأَنَّ النَّسَبَ مِمَّا يَلْزَمُهُ خَاصَّةً ځکه چې نسب به خو خاص هم ده ته لازم وی. فَيَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِهِ نو دده اقرار صحیح دې. وَشَرْطُ أَنْ يُولَدَ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ دده په شان دده سره د پیدا کیدلو شرط ځکه دی. كَيْ لَا يَكُونَ مُكَذَّبًا فِي الظَّاهِرِ چې دې په ښکاره دروغجن او نه ګڼرخولې شی. وَشَرْطُ أَنْ لَا يَكُونَ لَهُ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ اود نسب مشهور نه کیدلو شرط ځکه لګولې شوې دې. لِأَنَّهُ يَمْنَعُ ثُبُوتَهُ مِنْ غَيْرِهِ، چې مشهور نسب د غیر نه نسب ثابتول منع کوی. وَإِنَّمَا شُرِطَ تَصْدِيقُهُ اود غلام د تصدیق شرط ځکه دې. لِأَنَّهُ فِي يَدِ نَفْسِهِ چې هغه پخپله ذاتی قبضه کې دې. إِذِ الْمَسْأَلَةُ فِي غُلَامٍ يُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهِ، ځکه چې د مسئلې وضع د داسې بچی په اړه کې ده.کوم چې پخپل ذات سره تعبیر کولې شی. بِخِلَافِ الصَّغِيرِ په خلاف د صغیر، عَلَى مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه څنګه چې وړاندې تیر شو. وَلَا يَمْتَنِعُ بِالْمَرَضِ اود بیمارۍ په وجه به اقرار ممتنع نه وی. لِأَنَّ النَّسَبَ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ ځکه چې نسب د اصلی ضرورتونو څخه دې. (وَيُشَارِكُ الْوَرَثَةَ فِي الْمِيرَاثِ) و هلك به وارثانو سره میراث کې شریك وی. لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ ځکه هرکله چې دده نه د هغه نسب ثابت شو. صَارَ كَالْوَارِثِ الْمَعْرُوفِ نو دا د میراث مشهور پشان شو. فَيُشَارِكُ وَرَثَتَهُ نود مړی وارثانو سره به شریك وی.

**تشریح:** مقر اقرار اوکړو.چه فلانې بچې زما خوئې دې.نو مقر څخه به دده نسب ثابتیږی.ځکه چې نسب د هغه امورو څنې دې.کوم چې خاص طور باندې هم ده ته لازمیدونکې دې.خود نسب د ثبوت لپاره یو څو شرطونه دی.① دده پشان ماشوم دده نه پیدا کیدای شی.چه دې په ښکاره لحاظ سره دروغجن اونه ګڼرخولې شی.② ماشوم مجهول النسب وی.که معلوم النسب وی.نو د بل چا نه دده نسب نه ثابتیدل یوه ښکاره خبره ده.③ ماشوم دده تصدیق اوکړی.چه زه دده خوئې یم.ځکه چې دا هلك پخپله ذاتی قبضه کې دې.ځکه چې مسئله د داسې بچی په حق کې فرض کړې شوې ده.کوم چې پخپل ذات سره تعبیر کولې شی.په خلاف د داسې بچی ، چې هغه پخپل ذات سره تعبیر نشی کولې.چه هغه د خپل قابض په قبضه کې وی.لکه څنګه چې ،،کتاب الدعوه،، کې تیر شو.او په دې وجه هم چې د نسب په ثابتیدلو کې بعض حقونه مرتب کیږی.لکه مثلاً د میراث ثبوت، د نفقې لزوم وغیره.او د اقرار په نسب کې ددې حقونو الزام دې.نود مقرله د اړخه دده التزام ضروری دې.او دا به دده په تصدیق سره کیږی.هرکله چې د مذکوره شرطونو په موجودګئ کې دده نسب ثابت شو.نو د نورو وارثانو سره به دا ماشوم هم د مقر وارث جوړیږی.او میراث به حاصلوی.

### د مور پلار، اولاد، ښځې او مولا لپاره د اقرار حکم

قَالَ (وَيَجُوزُ إِقْرَارُ الرَّجُلِ بِالْوَالِدَيْنِ وَالْوَلَدِ وَالزَّوْجَةِ وَالْمَوْلَى) جائز دې اقرار د یو کس په اړه کې ،د مور، پلار، خوئې، ښځه، اود مالك کیدلو، لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِمَا يَلْزَمُهُ ځکه چې ده د هغه شئ اقرار کړې دې.کوم چې په ده باندې

لازميږي. وَلَيْسَ فِيهِ تَحْمِيلُ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ. اوپه دې کې په بل باندې نسب اچول نه دی.

تشريح: كه يوسړي د صحت په حالت کې يا د بيمارئ په حالت کې بل چاته خپل پلار، يا خپله مور، يا خپل خونې اووائي.نو( د كافي ، معراج، او درمختار وغيره معتبراتو مطابق) مذكوره تيرشوی شروط ثلاثه سره دده اقرار صحيح دې.اوكه دې يوې ښځې ته خپله بی بی اووائي.نودا هم صحيح ده.په دې شرط چه① دا ښځه د بل چا بی بی نه وی.② د بل چا په عدت کې نه وی.③ ددې ښځې خور، يا ترور( د پلار يا د مورخور) د مقر منكوحه يا طلاقه كړې شوې نه وی.④ ددې ښځې نه علاوه څلور ښځې دده په نكاح کې نه وی.( درمختار، كافي وغيره)⑤ دا ښځه مجوسيه يا بت پرسته نه وی.( حموی )⑥ دا ښځه مقر باندې په رضاعت سره حرامه نه وی.( حاشيه زيلعی ).

§ دغه ډول كه دې اوښائي. چې فلانې سړې زما مولا عتاقه دې.نودا اقرار هم صحيح دې.په دې شرط چې دده ولاء د غير مقر نه ثابت نه وی.د صاحب دهدايه رحمه الله د قول مطابق دليل دادې.چه په دې کې دداسې امر اقرار دې.كوم چې پخپله ده ته لازميدونكي دې.او په دې کې نسب غير اړخ ته منسوب كول هم نشته.په دې مسائلو کې قاعده كليه داده.چه د سړی اقرار پخپله خپل ذات باندې حجت دې.غير باندې نه دې.

تنبيه⊛ د مور كيدلو اقرار صحيح كيدل، لكه څنگه چې پورته تير شو.هم دا مشهور دې.اكثر عالمان هم په دې دی.او هم دا د تحفة الفقهاء، د سراج الدين شرح فرائض اود علامه مرغيناني رحمه الله د روايت موافق دې. خوپه فرائض عتابی ، ضوء السراج، او مبسوط، ايضاح، اود شيخ محبوبی د جامع صغير په عامو نسخو کې ددې خلاف دادی.چه د مور كيدلو اقرار صحيح نه دې.څكه چې نسب آباء ( پلار، نيكه) نه كيږي.امهات ( مياندو) نه نه كيږي.او په دې کې غيرسړی يعنی د مقر پلار باندې زوجيت لازمول دی.نو اقرار به صحيح نه وی.خو صاحب د درمختار فرمائي ،چه د مذكوره اقرار صحت حق دې.څكه چې په اصل كيدلو کې مور او پلار دواړه برابر دی.نو مور د پلار پشان شوه.

(وَيُقْبَلُ إِقْرَارُ الْمَرْأَةِ بِالْوَالِدَيْنِ وَالزَّوْجِ وَالْمَوْلَى) او قبلولې به شی.د ښځې اقرار د چا متعلق د مور، پلار، خاوند، اود مالك كيدلو.لِمَا بَيَّنَّا په دې وجه كوم چې موږ بيان كړل.

تشريح: كه څوك ښځه دا اقرار اوكړی.چه فلانئ ښځه زما مور ده.يا فلانې سړې زما پلار دې.يا ميړه يا مولا عتاقه دې.نو ددې دا اقرار صحيح دې.وجه هم داده.كومه چې پورته ذكر شوه. «لأنه أقر بما يلزمه و ليس فيه تحميل النسب على الغير» پاتې شوه د هغه ښځه ( منكوحه) كيدل،نودا د هغه په ذات باندې ددې د اقرار د صحت نه مانع نه دی.

(وَلَا يُقْبَلُ بِالْوَلَدِ) او قبلولې به نشی.اقرار د خوی كيدلو.لِأَنَّ فِيهِ تَحْمِيلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ څكه چې دې کې غير باندې نسب اچول دی. وَهُوَ الزَّوْجُ او هغه ميړه دې.لِأَنَّ النَّسَبَ مِنْهُ څكه چې نسب هم دده نه ثابتيږي. (إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهَا الزَّوْجُ) خودا كه ميړه ددې تصديق اوكړی.( نوجائز ده) لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ څكه چې حق هم دده دې. (أَوْ تَشْهَدَ بِوِلَادَتِهِ قَابِلَةٌ) يا گواهي وركړی.دائی ددې بچی د پيدا كيدلو.لِأَنَّ قَوْلَ الْقَابِلَةِ فِي هٰذَا مَقْبُولٌ څكه چې په دې اړه کې د دائی قول قبلولې شی. وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ،اودا په طلاق کې تير شو. وَقَدْ ذَكَرْنَا فِي إِقْرَارِ الْمَرْأَةِ تَفْصِيلًا فِي كِتَابِ الدَّعْوَى،او موږ د ښځې د اقرار په اړه کې څه تفصيل په كتاب الدعوه کې ذكركړې دې. وَلَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِ هٰؤُلَاءِ،او ددې خلگو تصديق ضروری دې.

تشريح: كه څوك ښځه د يو بچی په اړه کې دا اووائي.چه دا زما خونې دې.نو تركومه پورې چې ددې ميړه ددې تصديق اونكړی.يا څوك دائی ددې شهادت ورنكړی.چه دا بچې ددې نه پيدا شوې دې.د هغه وخته پورې به دا اقرار نه قبليږي.څكه چې دې اقرار کې نسب په بل يعنی ميړه باندې لازمول دی.څكه چې د نسب اصل



تعلق سړی سره دې.ښځې سره نه دی.په دې وجه د ميړه تصديق ضروری دې.

وَيَصِحُّ التَّصْدِيقُ فِي النَّسَبِ بَعْدَ مَوْتِ الْمُقِرِّ او په اقرار د نسب کې د مقر د مرگ نه روسته هم تصديق صحيح دې. لِأَنَّ النَّسَبَ يَبْقَى بَعْدَ الْمَوْتِ، څكه چې نسب دمرگ نه روسته پاته پاتې كيږي. وَكَذَا تَصْدِيقُ الزَّوْجَةِ دغه ډول د ښځې تصديق هم صحيح دې. لِأَنَّ حُكْمَ النِّكَاحِ بَاقٍ، څكه چې د نكاح حكم پاته دې. وَكَذَا تَصْدِيقُ الزَّوْجِ بَعْدَ مَوْتِهَا دغه ډول د ښځې د مرگ نه روسته د ميړه تصديق صحيح دې. لِأَنَّ الْإِرْثَ مِنْ أَحْكَامِهِ.څكه چې ميراث د نكاح د احكامو څخه دې. وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يَصِحُّ اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز صحيح نه دې. لِأَنَّ النِّكَاحَ انْقَطَعَ بِالْمَوْتِ څكه چې نكاح مرگ سره منقطع شوه. وَلِهٰذَا لَا يَحِلُّ لَهُ غُسْلُهَا عِنْدَنَا،په دې وجه زموږ په نيز ميړه لپاره خپلې مړې ښځې ته غسل وركول حلال نه دی. وَلَا يَصِحُّ التَّصْدِيقُ عَلَى اعْتِبَارِ الْإِرْثِ، د ميراث په لحاظ سره د ميړه تصديق صحيح نه دې. لِأَنَّهُ مَعْدُومٌ حَالَةَ الْإِقْرَارِ، څكه چې ميراث د اقرار په حالت کې معدوم ( غيرموجود) وو. وَإِنَّمَا يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ هغه خود مرگ نه روسته ثابت شو. وَالتَّصْدِيقُ يَسْتَنِدُ إِلَى أَوَّلِ الْإِقْرَارِ حالانكه تصديق د اقرار پيل اړخ ته منسوب كيږي.

تشريح: يوسړی د نسب يا د نكاح اقرار اوكړو.او دهغه انتقال اوشو.دهغه د انتقال نه روسته مقرله دهغه تصديق اوكړو.نو تصديق به صحيح وی.څكه چې نسب د مرگ نه روسته پورې پاته پاتې كيږي. دغه ډول نكاح هم د ښځې په حق کې پاته پاتې كيږي.څكه چې ده باندې عدت واجبيږي.كوم چې د نكاح د آثارتو څخه دې.هم دا وجه ده.چه دا ښځه خپل مړ ميړه ته غسل وركولې شي.خو كه ښځې د زوجيت اقرار اوكړو.او ددې د مرگ نه روسته ميړه د هغې تصديق اوكړو.نود امام صاحب رحمه الله په نيز به صحيح نه وی.د صاحبينو او ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به په دې صورت کې هم تصديق صحيح نه وی.څكه چې د نسب پشان نكاح هم په مرگ سره نه باطليږي.بلكه پاته پاتې كيږي.په دې وجه به ميړه ددې وارث وی.اوكه ميړه د هغې د مرگ نه روسته نكاح باندې گواهان قائم كړی.نو گواهان به قبليږي.كه د وراثت په حق کې نكاح پاته نه پاتې كيدله.نو گواهان به نه قبليدل.امام صاحب رحمه الله دا فرمائي.چه نكاح خود مرگ په وجه منقطع شوه.تردې چې دې د هغې خور سره اود هغې نه علاوه څلورو ښځو سره نكاح كولې شی.او ددې د مرگ نه روسته د احنافو په اتفاق سره ميړه دې ته غسل نشی وركولې.پاتې شو د وراثت حكم،نودا خود مرگ نه روسته ثابتيږي.او نكاح د هغه احكامو په حق کې منتهی كيږي.كوم چې د مرگ نه مخكې وی.

## د مورپلار او ولد صلبی نه د علاوه نه د نسب د اقرار حكم

قَالَ (وَمَنْ أَقَرَّ بِنَسَبٍ مِنْ غَيْرِ الْوَالِدَيْنِ وَالْوَلَدِ) څوك چې د مور او پلار اود اولاد نه د علاوه د نسب اقرار اوكړی نَحْوَ الْأَخِ وَالْعَمِّ لكه د رور، او تره( اقرار اوكړی ). (لَا يُقْبَلُ إِقْرَارُهُ فِي النَّسَبِ) نودده قول به په نسب کې نه قبليږي. لِأَنَّ فِيهِ حَمْلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ څكه چې دې کې نسب په بل باندې اچول دی. (فَإِنْ كَانَ لَهُ وَارِثٌ مَعْرُوفٌ قَرِيبٌ أَوْ بَعِيدٌ) نوكه دده څوك معلوم وارث وی.كه قريبې وی اوكه لرې وی. (فَهُوَ أَوْلَى بِالْمِيرَاثِ مِنَ الْمُقَرِّ لَهُ) نو هغه به د ميراث مستحق وی.( په نسبت) د مقرله نه. لِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ مِنْهُ څكه چې هركله د هغه نسب دده نه ثابت نشو. لَا يُزَاحِمُ الْوَارِثَ الْمَعْرُوفَ نو هغه د مشهور وارث مزاحم ( او مقابل) نشی كيدلې. (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَارِثٌ) البته كه دده څوك وارث نه وی. (اسْتَحَقَّ الْمُقَرُّ لَهُ مِيرَاثَهُ) نو مقرله به دده د ميراث مستحق وی. لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةَ التَّصَرُّفِ فِي مَالِ نَفْسِهِ څكه چې مقر ته ولايت ( حاصل) دې.پخپل ذاتی مال کې د تصرف، عِنْدَ عَدَمِ الْوَارِثِ،كوم وخت چې وارث نه وی. أَلَا يُرَى آيا نه گورې. أَنَّ لَهُ أَنْ يُوصِيَ بِجَمِيعِهِ چې مقر ته اختيار دې.د خپل پوره مال د وصيت،كوم وخت چې وارث نه وی. فَيَسْتَحِقُّ جَمِيعَ الْمَالِ نو مقرله به د پوره مال مستحق وی. وَإِنْ لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ مِنْهُ اگرچه مقر نه دده نسب ثابت نشو. لِمَا فِيهِ مِنْ حَمْلِ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ په دې وجه چې په دې کې نسب غير باندې اچول دی.

تشريح: كه يوسړي د مور، پلار، او د ولد صلبي نه د علاوه د نسب اقرار اوكړي. لكه رور، تره، نيكه، نمسي وغيره، نو اقرار به نه قبليږي. ځكه چې دې كې نسب په غير باندې لازميږي. ځكه چې رور به هغه وخت وي. كله چې د پلار خوئې وي. او اكا (تره) به هغه وخت وي. كله چې د نيكه خوئې وي. اوس كه د مقر څوك معلوم النسب وارث وي. كه قريبي وي. لكه اصحاب فروض، او عصبه، اوكه لرې وي. لكه ذوي الارحام، نود مقر ميراث به مقرله ته نه ملاويږي. بلكه دې مشهور النسب وارث ته به ملاويږي. ځكه هركله چې مقر نه د مقرله نسب ثابت نشو. نود مشهور وارث مزاحم (او مقابل) به هم نه وي.

وَلَيْسَتْ هٰذِهٖ وَصِيَّةً حَقِيْقَةً او دا حقيقي وصيت نه دې. حَتّٰى اَنَّ مَنْ اَقَرَّ بِاَخٍ تردې چې چا د رور كيدلو اقرار اوكړو. ثُمَّ اَوْصٰى لِاٰخَرَ بِجَمِيْعِ مَالِهٖ بيا ئې د بل چا لپاره د پوره مال وصيت اوكړو. كَانَ لِلْمُوْصٰى لَهٗ ثُلُثُ جَمِيْعِ الْمَالِ خاصةً نو موصى له لپاره به د پوره مال دريمه وي. وَلَوْ كَانَ الْاَوَّلُ وَصِيَّةً اوكه اول هم وصيت وو. لَاشْتَرَكَا نِصْفَيْنِ نو دواړه به نيم په نيمه شريك وو. لٰكِنَّهٗ بِمَنْزِلَتِهٖ، خو دا په منزله د وصيت دې. حَتّٰى لَوْ اَقَرَّ فِيْ مَرَضِهٖ بِاَخٍ تردې كه په مرض الموت كې ئې د رور كيدلو اقرار اوكړو. وَصَدَّقَهُ الْمُقَرُّ لَهٗ او مقرله ددې تصديق اوكړو. ثُمَّ اَنْكَرَ الْمُقِرُّ وِرَاثَتَهٗ بيا مقرله دده د قرابت انكار اوكړو. ثُمَّ اَوْصٰى بِمَالِهٖ كُلِّهٖ لِاِنْسَانٍ ددې نه روسته ئې د پوره مال يوكس لپاره وصيت اوكړو. كَانَ مَالُهٗ لِلْمُوْصٰى لَهٗ نو پوره مال به د موصى له وي. وَلَوْ لَمْ يُوْصِ لِاَحَدٍ اوكه د هيڅ چا لپاره ئې وصيت اونكړو. كَانَ لِبَيْتِ الْمَالِ، نو مال به د بيت المال وي. لِاَنَّ رُجُوْعَهٗ صَحِيْحٌ ځكه چې دده رجوع كول صحيح دى. لِاَنَّ النَّسَبَ لَمْ يَثْبُتْ ځكه چې نسب نه وو ثابت شوې. فَبَطَلَ اِقْرَارُهٗ نو اقرار باطل شو.

تشريح: يعنى د رور، او اكا (تره) وغيره كيدلو مذكوره اقرار حقيقي وصيت نه دې. بلكه په مرتبه د وصيت دې. د حقيقي وصيت نه كيدلو وضاحت خو په هغه جزئيه سره كيږي. كه يوكس د رور كيدلو اقرار كاوه نه روسته د بل يوكس لپاره د خپل پوره مال وصيت اوكړو. نو موصى له ته د پوره مال دريمه ملاويږي. كه اول يعنى د رور كيدلو اقرار حقيقي وصيت وې. نو مقرله او موصى له به نيم په نيمه دواړه شريك وو.

او په مرتبه د وصيت كيدلو وضاحت دې جزئيه سره كيږي. كه يوكس پخپل مرض الموت كې د يوكس په نسبت د رور كيدلو اقرار اوكړو. او مقرله د هغه تصديق اوكړو. ددې نه روسته مقر دده د قرابت نه انكار اوكړو. بيا ئې د خپل پوره مال وصيت بل چا لپاره اوكړو. نودا مال به پوره دې موصى له ته ملاويږي. اوكه دده د انكار نه روسته ده هيڅ چا لپاره وصيت اونكړو. نو پوره مال به بيت المال كې داخليږي. ځكه چې د نسب د داسې اقرار نه دده رجوع كول صحيح دى. لكه څنګه چې د وصيت نه رجوع كول صحيح كيږي. كه مذكوره اقرار د وصيت په مرتبه كې نه وې. نو دده رجوع كول به نه صحيح كيدله.

### د پلار د مرګ نه روسته د رور كيدلو په اقرار سره د نسب او د ميراث حكم

قَالَ (وَمَنْ مَاتَ اَبُوْهُ) او د كوم كس چې پلار مړشو. فَاَقَرَّ بِاَخٍ نو هغه د يوكس په نسبت د رور كيدلو اقرار اوكړو. لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُ اَخِيْهِ) لِمَا بَيَّنَّا نو دده رور كيدلو نسب به نه ثابتيږي. په ذكر شوې دليل سره. (وَيُشَارِكُهٗ فِي الْاِرْثِ) البته هغه به په ميراث كې دده سره شريك وي. لِاَنَّ اِقْرَارَهٗ تَضَمَّنَ شَيْئَيْنِ: ځكه چې دده اقرار دوې (دوه) څيزونو ته ګډ دې. حَمْلَ النَّسَبِ عَلَى الْغَيْرِ په غير باندې نسب ايخودلو ته، وَلَا وِلَايَةَ لَهٗ عَلَيْهِ، او مقر ته هغه باندې دا اختيار نشته. وَالْاِشْتِرَاكَ فِي الْمَالِ دوهم مال كې د شريكولو، وَلَهٗ فِيْهِ وِلَايَةٌ او مقر لپاره ددې اختيار شته. فَيَثْبُتُ نو دا به ثابتيږي. كَالْمُشْتَرِيْ اِذَا اَقَرَّ عَلَى الْبَائِعِ بِالْعِتْقِ لكه مثلاً مشتري بائع باندې د ازادولو اقرار اوكړي. لَمْ يُقْبَلْ اِقْرَارُهٗ نو بائع باندې دده اقرار قبول نه دې. حَتّٰى لَا يَرْجِعَ عَلَيْهِ بِالثَّمَنِ تردې چې هغه د بائع نه ثمن واپس نشي اخستلې. وَلٰكِنَّهٗ يُقْبَلُ فِيْ حَقِّ الْعِتْقِ خود آزادئ په حق كې دده اقرار مقبول دې.

تشريح: د يوكس پلار مړشو. او ده د يوكس په نسبت دا اقرار اوكړو. چه دا زما خوئې دې. نود رور كيدلو نسب



به خو نه ثابتيږي. ځكه چې دا په غير باندې نسب اچول دى. البته مقرله به مقر سره د پلار په ميراث كې شريكيږي. امام مالك، امام احمد رحمهما الله او اكثر اهل علم هم ددې قائل دى. امام شافعي رحمه الله فرمائي چه د نسب نه ثابتيدلو په وجه به ميراث كې هم نه شامليږي. دا د حضرت ابن سيرين رحمه الله نه هم نقل دى.

مونږ وايو چه مذكوره اقرار په دوې (دوه) خبرو باندې مشتمل دې. ① يو په بل باندې نسب لازمول، او مقر ته په غير باندې ددې اختيار حاصل نه دې. نودا به نه ثابتيږي. ② دوهم د ميراث په مال كې اشتراك او مقر ته ددې اختيار دې. ځكه چې دا پخپل ذات باندې اقرار دې. او ده ته پخپل ذات باندې ولايت حاصل دې. نودا مالي شركت به حاصليږي. ددې مثال هم موجود دې. مثلاً يو مشتري پخپل بائع باندې دا اقرار اوكړو. چه ما كوم غلام دده نه اخستې دې. هغه ده آزاد كړو. نو بائع باندې دده دا اقرار مقبول نه دې. تردې چې دې د بائع نه د غلام ثمن واپس نشي اخستلې. خود آزدئ په حق كې دده دا اقرار قبلولې شي. ځكه چې په حق آزادئ كې دده دا اقرار پخپل ذات باندې اقرار دې. تردې چې دا غلام به مشتري باندې ازاديږي. نوهم دغه ډول د نسب مذكوره اقرار به، د ميراث د اشتراك په اړه كې قبليږي.

① ږومبۍ فائده: كله چې د مذكوره مقر دده د ذات په حق كې اقرار قبول شو. نو زمونږ په نيز به مقرله د مقر د نصف برخې (حصې) مستحق وي. او امام مالك اود ابن ابى ليلى رحمهما الله په نيز به دده اقرار تركه كې شائع وي. نو مقر ته به دومره ملاويږي. څومره چې دده مخصوص برخه ده. تردې چې د كوم كس پلار مړشوې دې. كه ده څوك مشهور رور وي. او هغه د يوبل كس په نسبت د رور كيدلو اقرار اوكړي. او معلوم رور دې دروغجن كړي. نو زمونږ په نيز به مقر ته د هغه مقبوض نيمه ملاويږي. اود امام مالك اوابن ابى ليلى رحمهما الله په نيز به دده ته د مقبوض دريمه ملاويږي. ځكه چې مقر دده لپاره نصفين كې د شائع مقدار د ثلث (دريمې) اقرار كړې دې. نو دده اقرار به دده په برخه كې نافذ وي. او كومه چې دده د رور په برخه كې ده. هغه به باطل وي. نو مقر به دده د مقبوض ثلث وي. او هغه د پوره مال سدس (شپږمه) ده. او بل سدس كوم چې دده د رور په برخه كې دې. هغې كې به دده اقرار باطل وي. مونږ وايو. د مقر ګمان دادې. چه مقرله استحقاق كې دده برابر دې. او منكر پخپل انكار كې ظالم دې. نود مقر مقبوض به د مالك پشان ګرځولې شي. او پاته به ددوى په منځ كې برابر تقسيمولې شي.

② دويمه فائده: د ميراث په حق كې د نسب ثبوت صرف د يو وارث په اقرار سره نه وي. بلكه وارثانو كې دوې (دوه) سړي يا يو سړې او دوې (دوه) ښځې كيدل پكار دى. امام ابويوسف، حسن، او امام شافعي رحمهم الله فرمائي. چه څوك هم ميراث حاصلوى. د هغه په قول سره به نسب ثابتيږي. اګرچه يو وي. خو ږومبې قول اصح دې. اقرار په شهادت باندې قياس كاوه سره، شيخ زاهدى رحمه الله په شرح مختصرالقدوري كې د شرح اقطع نه هم دغه ډول ذكر كړې دى. او صاحب د بدائع ددې وضاحت داسې كړې دې. چه د ،، اخوة،، وغيره اقرار دې. په دې معنى چې دې كې د بل نسب په غير باندې لازمول دى. نودا د شهادت په درجه كې شو. او خالله د يو كس شهادت نه قبليږي.

تنبيه: په زير بحث مسئله كې بعض خلګو دا اعتراض كړې دې. چه دا مسئله بعينه د مخكنۍ مسئلې نه معلومه شوه. نو ددې ذكر د تكرار نه خالى نه دې. خودا اعتراض بې ځايه دې. ځكه چې ږومبۍ مسئله كې مقر مورث دې. او په دې مسئله كې وارث دې. په دې لحاظ سره دواړه مسئلې جلا جلا دى. د نسب په نه ثابتيدلو كې دواړه برابر دى.

قَالَ (وَمَنْ مَاتَ يو سړې مړشو. وَتَرَكَ ابْنَيْنِ و هغه دوې (دوه) ځامن پريخودل. وَلَهٗ عَلٰى اٰخَرَ مِائَةُ دِرْهَمٍ و د هغه په بل چا باندې سل درهمه قرضه ده. فَاَقَرَّ اَحَدُهُمَا نو يوخوى اقرار اوكړو. اَنَّ اَبَاهُ قَبَضَ مِنْهَا خَمْسِيْنَ چې دده (زما) پلار په هغې كې پنځوس وصول كړې وې. لَاشَيْءَ لِلْمُقِرِّ نو مقر لپاره به هيڅ نه وي. وَلِلْاٰخَرِ خَمْسُوْنَ) و دوهم خوى لپاره به پنځوس وي. لِاَنَّ هٰذَا اِقْرَارٌ بِالدَّيْنِ عَلَى الْمَيِّتِ لِاَنَّ الْاِسْتِيْفَاءَ اِنَّمَا يَكُوْنُ بِقَبْضٍ مَضْمُوْنٍ، ځكه چې دا

به مري باندې د قبضې وصولي په قبض مضمون سره كيږي. فَإِذَا كَذَّبَهُ أَخُوهُ او هر كله چې دده رور دې دروغجن كړو. اسْتَغْرَقَ الدَّيْنُ نَصِيبَهُ نو دين دده ټوله برخه واخستله. كَمَا هُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَنَا. لكه څنګه چې دا مذهب دې.

**تشريح:** يو سړى دوې (دوه) خامن پريخودل، او مړشو. چه دده په بل سړي باندې سل درهم دي. اوس په خامنو كې يو اقرار اوكړو. چه زما پلار په دې سلو كې پنځوس وصول كړې وې. نودا اقرار به د هغه خوى برخې (حصې) ارخ ته راجع كيږي. كوم چې د قبض مقر دې. او ده ته به هيڅ نه ملاويږي. او دوهم خوى ته به پنځوس درهمه ملاويږي. وجه دا ده. چه مذكوره اقرار ګويا مړي باندې د پور كيدلو اقرار دې. څكه چې د پور وصولولو هم دا صورت وي. چه د پور مثل مال اخستې شي. او هم دا خپل منځ كې بدله وي. او هر كله چې دده رور په دې اقرار كې دې دروغجن كړو. نود مذكوره اقرار پوره قرضه هم د هغه خوى په برخه كې لازمه چا چې اقرار كړې دې. لكه څنګه چې زموږ په نيز مذهب هم دا ګرځولې شوې دې. چه كوم وارث پخپل مورث باندې اقرار اوكړي. او نور وارثان دده منكر وي. نو قرضه صرف د مقر په قبضه كې پريوځي. په خلاف د ابن ابي ليلى، چه ددوى په نيز د ټولو په برخو كې شائع كيږي.

① په معراج الداريه كې فرمائي. چه د امام شافعي رحمه الله يو قول زموږ د مذهب پشان دې. او دوهم قول دادې. چه ده ته به نصف دين لازم وي. امام احمد، ابراهيم نخعي، حسن، اسحاق، ابوعبيده، ابوثور هم ددې قائل دي. او د امام مالك رحمه الله د مذهب قياس هم دادې.

② سوال: اقرار صرف د مقر برخې (حصې) ارخ ته ګرځول، د قبضې نه وړاندې قسمت د دين ته مستلزم دې. اودا جائز نه دې؟

خواب: كله چې مقر د وراثت نه وړاندې د پنځوسو د مقبوض كيدلو اقرار اوكړو. نو دده دګمان مطابق صرف د دين نه پنځوس منتقل شوې، ،فلم تتحقق القسمة، ،

غَايَةُ الْأَمْرِ زموږ په نيز، غاية الامر (نتيجه د خبرې) دادې. أَنَّهُمَا تَصَادَقَا عَلَى كَوْنِ الْمَقْبُوضِ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا، چې دوى دواړو د مقبوض مشترك كيدلو باندې تصادق (او خيرات) كړې دې. لَكِنَّ الْمُقِرَّ لَوْ رَجَعَ عَلَى الْقَابِضِ بِشَيْءٍ خوكه مقر د قابض نه څه واخلي. لَرَجَعَ الْقَابِضُ عَلَى الْغَرِيمِ نو قابض به د غريم (قرضدار) نه اخلي. وَرَجَعَ الْغَرِيمُ عَلَى الْمُقِرِّ او غريم (قرضدار) به د مقر نه اخلي. فَيُؤَدِّي إِلَى الدَّوْرِ والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب نودا به دور (او تسلسل) ته رسوي.

**تشريح:** د يو سوال مقدر خواب دې. تقرير د سوال دادې چه هر كله واړه دين دې دواړو كې مشترك وو. نو ددې هريو جز به هم مشترك وي. نو كوم چې هلاك شو. هغه مشترك شو. او كوم چې پاته پاتې شو. هغه به مشترك پاته وي. بيا منكر خوى چې د هلاكيدلو اقرار اوكړو. نو ددې په هيڅ يو جزء كې ئې هم د اشتراك انكار نه دې كړې. اود مقر خوى ګمان اګرچه دادې. چه ددې بعض اجزاء هلاك شو. خو هغه د هلاكيدلو نه روسته مابقي كې د اشتراك منكر نه دې. نو دوى دواړه په پاته مقبوض كې اشتراك باندې متفق دي. نو په دوى دواړو كې نيم په نيمه كول پكار دي. او قابض چې په كوم باندې قبضه كړې ده. مقر له د هغه نه ددې نيمه واپس اخستل پكار دي؟

خواب: حاصل د خواب دادې. چه د مقبوض په مشترك كيدلو كې اګرچه د دواړو اتفاق دې. خو مقر د پاته پنځوس وصولولو كې نه هيڅ هم واپس نشي اخستلې. څكه كه مقر د پنځوسو د قابض نه مثلاً پنځويشت واپس واخلي. نو هغه به بيا د قرضدار نه وصول كوي. چه دده برخه پوره شي. په دې صورت كې قرضدار باندې پنځه اويا درهم وركول راغلل. حالانكه د مقر په اقرار سره په ده باندې صرف پنځوس درهم وو. نو هغه به پنځويشت درهم د مقر نه اخلي. نو مقر چې كوم څه وصول كړي وو. هغه پور ته وركړې شو. او په دې مهال سره هغه ته هيڅ فائده ملاؤ نشوه



# كتاب الصلح

ژباړه: (دا) كتاب د صلح (په بيان كې) دې.

**تشريح: الربط بين الكتابين** ◉ دكتاب الاقرار نه روسته د كتاب الصلح راوړې. وجه د مناسبت ښكاره ده. څكه چې د مقر انكار د جګړې باعث جوړيږي. او جګړه مستدعي د صلح وي.

**معنى الصلح لغة وشرعاً** ◉ صلح په لغت كې د مصالحت د مصدر اسم دې. كوم چې د صلاح (چې د فساد ضد دې) يعنې د استقامت حال نه مشتق دې. نو لغوي معنى ددې ذاتي حسن باندې دلالت كوي. په شريعت كې صلح هغه عقد ته وائي. كوم چې رافع د نزاع او قاطع د خصومت وي. يعنې كوم عقد چې جګړه ختمه كړي. هغې ته صلح وائي. په څه چې صلح واقع وي. هغې ته مصالح عليه او چا سره چې صلح وي. هغه ته مصالح عنه او څوك چې صلح كوي. هغه ته مصالح وائي. مثلاً زيد په خالد باندې د يو كور دعوه اوكړله. خالد اوويل. چه ما ته سل درهم واخله. اود كور دعوه پريږده. نو سل درهم مصالح عليه دي. او كور مصالح عنه دې. او خالد مصالح دې.

## د صلح اقسام او شرعي حيثيت

قَالَ (الصُّلْحُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَضْرُبٍ: صلح په درې قسمه ده. صُلْحٌ مَعَ إِقْرَارٍ، صلح اقرار سره، وَصُلْحٌ مَعَ سُكُوتٍ، صلح خاموشۍ سره، وَهُوَ أَنْ لَا يُقِرَّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ او هغه دادہ. چه مدعى عليه نه اقرار اوكړي. وَلَا يُنْكِرَ ونه انكار اوكړي. وَصُلْحٌ مَعَ إِنْكَارٍ او صلح مع انكار،

**تشريح:** لكه څنګه چې پورته معلومه شوه. چه صلح خپل منځ كې هغه عقد ته وائي. د كوم په ذريعه چې د دوې (دوه) مختلفينو په منځ كې اصلاح واقع كيدو ارخ ته رساني اوشي. ددې مختلف انواع دي. ① يو نوع هغه صلح ده. كومه چې د مسلمانانو اود اهل حرب په منځ كې واقع شي. قال الله تعالى ؟﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾، ،اوكه دوى مائل شي صلح ارخ ته نو ته هم مائل شه دې ارخ ته او اعتماد كوه په الله باندې، ، ② دوهم نوع هغه صلح ده. كومه چې د اهل عدل او اهل بغي په منځ كې واقع وي. قال الله تعالى ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ اوكه په مسلمانانو كې دوې (دوه) ډلې خپل منځ كې په جنګ شي. نو په دوى كې روغه (صلح) اوكړئ، ، ③ دريمه نوع هغه صلح ده. كوم چې د مخالفت (او ناچاقۍ) د برې په وخت د زوجينو (ښځه خاوند) په منځ كې واقع شي. قال الله تعالى ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا﴾ ، ،اوكه څوك ښځه يريږي. د خپل ميړه د جنګ كولونه، يا د زړه اوختلو نه. نو هيڅ ګناه نشته په دواړو، چه اوكړي خپل منځ كې صلح، او صلح ښه غوره شئ دې، ، ④ څلورمه نوع هغه صلح ده. كومه چې د اموالو په سلسله كې د اختلاف كونكو په منځ كې واقع شي. په دې باب كې هم ددې نوع بيان دې. ددې نوع درې قسمونه دي.

① **صلح مع الاقرار** ◉ صلح مع الاقرار دادہ. چه مدعى د مدعى عليه د دعوې اقرار اوكړي. دده سره په څه اندازه مال باندې صلح اوكړي. چه هغه خپله دعوه پريږدي. دا صلح په مرتبه د شراء په اقل وي.

② **صلح مع الانكار** ◉ صلح مع الانكار دادہ. چه مدعى عليه د دعوه نه منكر وي. او په صلح كاوه باندې راضي وي. ګويا چې په ده باندې د انكار په وجه قسم عائد شو. نو هغه د قسم په بدله كې دا مال وركړو. او صلح ئې اوكړله.

③ **صلح مع السكوت** ◉ د صلح مع السكوت تفسير پخپله صاحب كتاب ذكر كړې دې. چه مدعى عليه نه اقرار اوكړي. اونه انكار اوكړي. صاحب د عنايه رحمه الله فرمائي. چه د صلح په ذكر شوى انواع ثلاثه كې منحصر كيدل ضروري دي. څكه چې خصم به د دعوه په وخت يا سكوت اختياروي. يا به څه خواب

ورکوي.او خواب د دوي (دوه) حالونو نه خالي نه دي.يا به نفيا وي.او يا به اثباتا وي.

**﴿وَكُلُّ ذٰلِكَ جَائِزٌ﴾** او دا دري واړه جائز دي.

**تشريح:** زمونږ په نيز د صلح ذكر شوي دري واړه قسمونه د قرآن او حديث په رڼا كي جائز دي.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددي قائل دي.خكه د الله تعالى ارشاد ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ مطلق دي.اود نبی كريمﷺ ارشاد دي. ﴿الصلح جائز بين المسلمين﴾.

**﴿لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾﴾** خكه چي د الله تعالى قول ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ مطلق دي.

**تشريح:** صاحب د نتائج فرمائي.چه دا په تسامح باندي مبنى ده.خكه چي د جواز دليل قول مطلق دي.اطلاق نه دي.خو په عامه توگه (عام طور) باندي مصنفين په داسي قسمه موقعو باندي عبارت كي تسامح كوي.يو خو په دي وجه چي مراد ښكاره كيږي. دوهم په دي خبره تنبيه وي.چه په دي عبارت كي يوه خاص فائده هم ده.لكه د علم تعريف چي په ﴿حصول صورة الشئ في العقل﴾ سره كولي شي.حالانكه علم په حقيقت كي هم دا صورت حاصله في العقل دي.لكه خنگه چي سيد شريف جرجاني رحمه الله پخپلو بعضو تصانيفو كي دا خبره محقق كړي ده.بعض حضراتو د عبارت ، ،لإطلاق قوله ،،توجيه په ، ،لقوله الطلق ، ، سره كړي ده.يعني كلام د قبيلي د ، ،اضافت صفت إلى الموصوف ، ، دي.خو صاحب د نتائج فرمائي.چه دا خكه صحيح نه دي.چه د مختار مذهب مطابق نه ، ،اضافت صفت الى الموصوف ، ، جائز دي.او نه اضافت موصوف الى الصفت.په دي وجه نحاتو د جر ، قطيفه ، او اخلاق ثياب وغيره تاويل كړي دي.

**﴿وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾** او خكه چي د نبي كريمﷺ ارشاد دي. {كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ} چي د مسلمانانو په منځ كي هره صلح جائز ده. {إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا} (۱) سوا دهغه صلح نه، كوم چي حرام حلال كړي.يا حلال حرام كړي.

**تشريح:** ددي حديث تخريج امام ابوداؤد ، ابن حبان،او حاكم د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه او امام ترمذي ، ابن ماجه، او حاكم د حضرت عمرو بن عوف رضي الله عنه نه كړي دي.او امام ترمذي رحمه الله ددي تصحيح كړي ده.په دي باندي بعضو حضراتو امام ترمذي پسي شوي دي.خكه چي ددي راوي كثير ابن عبدالله بن عمرو بن عوف مزني ، متهم بالكذب دي.

خواب دادي.چه امام بخاري رحمه الله په ﴿الساعة التي ترجى يوم الجمعة﴾ كي دكثير بن عبدالله روايت ته حسن ونيلي دي.(كمافي التهذيب).او امام ابوداؤد مذكوره حديث په طريق د ﴿كثير بن زيد عن الوليد بن رباح عن ابي هريرة رضي الله عنه﴾ روايت كړي دي.

**سوال** ابن حزم فرمائيلي دي.چه كثير بن عبدالله ، كثير بن زيد دي.او بالاتفاق ساقط الاعتبار دي؟

**جواب** دا د موصوف صرف گمان دي.خكه چي دا دوي (دوه) جلا جلا راويان دي.چه دوى په نوم اود حديث د متن په سياق كي مشترك دي.او په نسب او سند كي مختلف دي.په دي وجه خطيب د ابن حزم ترديد كړي دي.پاتي شوه د سقوط خبره، نودا هم غلطه ده.خكه چي كثير بن زيد ته ابن عمار موصلي ثقه ونيلي دي.شيخ ابن معين فرمائي.چه ﴿ليس به بأس و قال مرة صالح﴾ شيخ ابو زرعه فرمائي.چه ﴿صدوق فيه لين﴾ د ابو حاتم قول دي.چه دا صالح دي.قوي نه دي.خو دده حديثونه دي ليكلي شي.ابن عدي فرمائي.چه ما په ده كي هيڅ حرج او نه موندلو او ماته اميد دي.چه په ده كي هيڅ باك نشته.ابن حبان دي په ثقاتو كي ذكركړي دي.

ددي نه علاوه د حديث مثل د حضرت عمر رضي الله عنه په مكتوب كي هم نقل دي.كوم چي هغوى رضي الله عنه د حضرت

(۱) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الأقضية باب ۱۲ رقم ۳۴۹۳_



ابوموسى اشعري رضي الله عنه په نوم ليكلي وو. ﴿وقد ثبت أنه كتاب جليل تلقاه العلماء بالقبول﴾.

## د امام شافعي رحمه الله نقطهٔ نظر

**﴿وَقَالَ الشَّافِعِيُّ﴾** امام شافعي رحمه الله فرمائي. ﴿لَا يَجُوزُ مَعَ إِنْكَارٍ﴾ چي جائز نه ده.صلح مع انكار، ﴿أَوْ سُكُوتٍ﴾ او صلح مع سكوت.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله په نيز د صلح صرف رومبي قسم جائز دي.يعني صلح مع اقرار، ابن حزم رحمه الله هم په دي باندي زور راوړلي دي.او ونيلي ئي دي.چه صلح مع انكار، صلح مع سكوت، صلح مع اسقاط يمين يو مع جائز نه دي.سوا د صلح مع اقرار نه.دابن ابی ليلى په نيز صلح مع اقرار، او صلح مع سكوت دواړه جائز دي.پاتي شوه صلح مع انكار، نو په تحفه كي دي.چه دا ددوي په نيز جائز نه ده.ابن ابی اسحاق او شيخ خرقي صلح مع انكار منلي ده.ددي نه علاوه ئي نه دي منلي.

**﴿لِمَا رَوَيْنَا﴾** هم ددي حديث په وجه كوم چي مونږ روايت كړي دي. ﴿وَهٰذَا بِهٰذِهِ الصِّفَةِ﴾ اودا صلح هم ددي صفت ده. ﴿لِأَنَّ الْبَدَلَ كَانَ حَلَالًا عَلَى الدَّافِعِ﴾ خكه چي بدل صلح وركونكي باندي حلال وو. ﴿حَرَامًا عَلَى الْآخِذِ﴾ او په اخستونكي باندي حرام، ﴿فَيَنْقَلِبُ الْأَمْرُ﴾ نو معامله به الټه شي. ﴿وَلِأَنَّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ يَدْفَعُ الْمَالَ﴾ او خكه چي مدعى عليه مال په دي وجه وركوي. ﴿لِقَطْعِ الْخُصُومَةِ﴾ چي دده د ذات نه جگړه منقطع شي. ﴿وَهٰذَا رِشْوَةٌ﴾ اودا رشوت دي.

**تشريح: قوله لما روينا:** د امام شافعي رحمه الله دليل هم هغه حديث دي.كوم چي وړاندي ذكرشو.يعني ، ،الصلح جائز ،، دلته په قول د صاحب نتائج ښكاره داده.چه علامه مرغيناني رحمه الله دا وائي ، ،لآخر ما روينا ، ،خكه چي د حديث پيل ددوى په حق كي حجت نه دي)

او وجه د استدلال داده. ① چي صلح مع انكار او صلح مع سكوت كي حرام حلالول، يا حلال حرامول، د كوم چي په دي حديث كي نفي شوي ده.موجود ده.خكه چي د صلح عوض وركونكي باندي حلال وو.او اخستونكي باندي حرام.نو معامله الټه شوه.يعني وركونكي باندي حرام شوه.او اخستونكي باندي حلال شوه.په نورو الفاظو كي داسي اووايه.كه مدعى پخپله دعوه كي په حقه وو.نو هغه لپاره مدعا به د صلح نه وړاندي اخستل حلال وو.د صلح په وجه حرام شو.اوكه هغه په باطله وو.نود باطل دعوه په ذريعه صلح نه وړاندي هغه له مال اخستل حرام وو.د صلح نه روسته حلال شو.نو صلح حرام حلال كړل.او حلال ئي حرام كړل. ② دوهم دليل دادي. چي مدعى عليه مال خكه وركوي.چه هغه نه جگړه لري شي.دا رشوت دي.او حرام دي.

## د احنافو نقلي دليل

**﴿وَلَنَا مَا تَلَوْنَا﴾** او زمونږ دليل هغه آيت دي.كوم چي مونږ تلاوت كړو.

**تشريح:** زمونږ دليل دادي.چه آيت ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ مطلق دي.چه د صلح دريو وارو قسمونو ته گډ دي.

**سوال** مذكوره آيت د زوجينو ( دښځي او خاوند) د صلح په سياق كي واقع دي.(آيت سره ژباړي تيرشوي دي) نودا د عهد لپاره شو.او معهود د زوجينو صلح ده.خكه قاعده داده.چه كله نكره په معرفه واپس كړي شي.نو دوهم د رومبي عين وي.كمافي قوله تعالى ﴿فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ﴾ او كله چي معهود مراد شو.نو عموم پاتي نشو.

**خواب** د صاحب اسرار په قول دا د تعليل لپاره دي. ﴿أي لا جناح عليهما أن يصالحا لأن الصلح خير﴾ نودا عام شو.خكه چي علت دحكم هم هغه محل سره مقيد نه وي.په كوم كي چي علت ذكر شوي دي.بلكه كوم خائي چي هم دا علت اوموندلي شي.هلته به ددي حكم لازميږي.وجه داده.كه په جنس باندي محمول كړي شي.نو په دي كي به معهود اوغير معهود واړه داخل وي.اود عهد په صورت كي به صرف معهود باندي منحصر وي. ﴿فالحمل على الجنس احق كما في قوله تعالى ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ﴾ ،،اى جميع المفسدين و المصلحين،،﴾

صاحب د نتائج وائي.چه د اصولو د قواعدو مناسب هم دا تقرير دي.بلكه د معقولو قواعدو مطابق هم دادي.ځكه چې په دې صورت كې ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ د شكل اول د كبرى په ځائې وي.ګويا چې داسې اووئيلې شو. ﴿لأن هذا صلح و الصلح خير﴾ آودا معلومه ده.چه د شكل اول د انتاج لپاره كليت د كبرى شرط دې.

سوال:كه مذكوره جمله د تعليل لپاره وه.نو واؤ به د فاء په ځائې راوړلې شو.او ،،فالصلح خير،، به وئيلې كيدل؟

ځواب:دا ابدال هغه وخت لازم وو.كله چې تعليل لفظي حيثيت سره وي.حالانكه تعليل معنوي حيثيت سره دي.دلته كې مفسرينو وئيلې دي.چه ﴿إن الله تعالى أخرجه مخرج التعليل لما سبق ذكره كأنه قال صالحوا لأن الصلح خير﴾ په غاية البيان كې دي.چه د عربو ژبې نه هم دا مفهوم معلوميږي. ﴿يقال ،، صل و الصلاة خير،،﴾ ددې نه علاوه موږ وړاندې اشاره كړې ده.چه،،و الصلح خير،، جمله د دليل كبرى په ځائې كې ده.او د صغرى ذكر مطوى دې.او لام او فاء وغيره أدواة د تعليل چې كله ذكر كړې شي.نودا د دليل په پيل كې داخليږي.اود دليل پيل صغرى ده.كبرى نه ده. ﴿فلا يلزم الإبدال ههنا أصلاً﴾

سوال:د ابن حزم په قول نه آيت كې عموم دې.او نه الله تعالى د هرې صلحې اراده فرمائيلې ده.ځكه كه څوك سرې خپل يا د خپلې ښځې د فرج په اباهت (اجازت) يا د لمونځ په پريښولو ، يا د يو حر په استرقاق (غلام جوړولو) باندې صلح اوكړي.نودا صلح به باطل وي.

ځواب:د آيت د عموم نه مراد دا نه دې.چه خامخا هر قسم صلح په دې كې داخل ده.بلكه د لفظ ،،خير،، لحاظ به ساتلې شي.او هرهغه صلح به داخل وي.چه هغې كې د خيريت احتمال وي.

سوال:كه د آيت اطلاق اومنلې شي.بيا هم دا د صلح هرقسم اړخ ته نشي ګرځيدلې.ځكه چې صلح بعداليمين، صلح د مودع، صلح د مدعى قذف، د احنافو په نيز ټولې ناجائز دي.نودا به ادنى اړخ ته ګرځولې شي.او هغه صلح مع اقرار ده؟

ځواب:كه بعض ځايونو كې د يو مانع امر په وجه اطلاق باندې عمل كول متروك وي.نو په دې سره دا نه لازميږي.چه د مانع نه كيدلو په صورت كې هم په دې باندې عمل اونكړې شي.

تنبيه: احنافو باندې د شوافعو د اړخه يو اعتراض داهم كيږي.كه يو سړې په يوې ښځه باندې د نكاح دعوه اوكړي.او ښځه منكره وي.بيا هغه په څه مال باندې صلح اوكړي.نودا جائز نه دي.نو صلح مع انكار خو پخپله د احنافو په نيز هم جائز نشوه؟

ځواب:دادې.چه اول خو په مختصرالقدوري ، مختصر الكافى ، شرح كافى ، هدايه، وغيره عامو كتابونو كې ددې صراحت موجود دې.چه ذكر شوې مسئله كې صلح جائز ده.او ظاهرالرواية هم دادې.اوكه ناجائز اومنلې شي.لكه څنګه چې په غيرظاهرالرواية كې يو روايت راغلې دې.او شوافعو د خپل غرض موافق كيدلو په وجه هم دا راخستې، او اعتراض ئې كړې دې.نو ځواب هم هغه دې.كوم چې پورته ذكر شو. ﴿أن ترك العمل بالإطلاق فى بعض المواضع لمانع لا يستلزم تركه عند عدمه﴾

**وَأَوَّلُ مَا رَوَيْنَا** او پيل دهغه حديث كوم چې موږ روايت كړې دې.

تشريح: زموږ دوهم دليل دادې.چه د مذكوره حديث پيل ﴿الصلح جائز بين المسلمين﴾ مطلق دې.چه دا د صلحې دريو واړو قسمونو ته ګډ دې.د صاحب دهدايه رحمه الله په دې قول چې سعدى چلپى دا اعتراض كړې دې.چه دا په تكرار باندې مشتمل دې.نو غوره دا وه.چه موصوف دا وړاندې نه ذكر كولې.چه تكرار نه لازميدلو؟

ځواب دادې.چه دلته ددې ذكر يو خو د تاكيد لپاره دې. دوهم دا د راروان قول يعنى د ،،و تاويل آخره،، تمهيد دې.

تنبيه: البته په ،،اول ما روينا،، باندې دا اشكال ضرور دې.چه په دې سره هم دا مفهوم معلوميږي.چه زموږ دليل دحديث پيل دې.ددې د آخر لحاظ ساتلو نه بغير.حالانكه دا غلطه ده.ځكه چې آخر دحديث،د حديث دشروع نه مستثنى دې.او د فقهٔ د اصولو نه دا خبره معلومه ده.چه د استثناء په اړه كې د احنافو امامانو



مختار مذهب دادې.چه د كلام د پيل حكم د مستثنى د اخراج نه مؤخر وي.نود استثناء په صورت كې پيل د كلام، ددې د آخر نه بغير څه مستقل حكم نشي كيدلې.بلكه د مستثنى او مستثنى منه مجموعې سره به خبره پوره كيږي.

صاحب د نتائج فرمائي.چه ددې توجيه صرف هم دا كيداې شي.چه د موصوف كلام ،،و تاويل آخره،، د معنى په لحاظ سره د ،،و أول ما روينا،، سره متصل دې.اود كلام حاصل دادې. ﴿أن لنا أول ما روينا مع تاويل آخره﴾ نو زموږ دليل ددې تاويل لحاظ ساتلو سره پوره حديث دې. ﴿و لكن الإنصاف أن لفظة أول ههنا مع كونها زائدة لا فائدة لها موهمة لما يخل بالكلام و يضر بالمقام فالأولى أن تطرح من البين﴾

**وَتَاوِيلُ آخِرِهِ أَحَلَّ حَرَامًا لِعَيْنِهِ** او د هغې د آخر تاويل دادې.چه كوم حلال كړي.حرام لعينه، **كَالْخَمْرِ** لكه شراب، **أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا لِعَيْنِهِ** يا حرام كړي حلال لعينه، **كَالصُّلْحِ عَلَى أَنْ لَا يَطَأَ الضَّرَّةَ** لكه په دې باندې صلح كول، چه بنې سره به وطى نه كوي.

تشريح: پاتې شوه د حديث آخرى ټكړه يعنى ﴿إلا صلحاً أحل حراماً او حرم حلالاً﴾ نو ددې مطلب دادې.چه كومه صلح د حرام لعينه حلت ته مستلزم وي.لكه شراب او سود وغيره باندې صلح كول،يا د حلال لعينه حرمت ته مستلزم وي.لكه د ښځې په دې امر باندې صلح كول،چه ميړه به ددې بنې سره صحبت نه كوي.دغه ډول حرالاصل رقيق يا د محرم بضع حلال جوړولو باندې صلح كول،نو داسې صلح جائز نه ده.حديث هم په دې معنى باندې محمول كول احق او انسب بلكه ضرورى دي.ځكه حرام مطلق هغه دې.كوم چې حرام ذاتي وي.او حلال مطلق هم هغه دې.كوم چې حلال لعينه وي.په خلاف د هغه معنى كوم چې امام شافعى رحمه الله اخستې ده.چه ددې نه خو صلح مع اقرار هم خالي نه ده.ځكه چې صلح په عامه توګه (عام طور) باندې پوره حق باندې نه كيږي.بلكه په بعض حق باندې كيږي.نود اخستې شوې مقدار نه د حق د پوره كيدلو پورې چې كوم زياتى مقدار دې.هغه مدعى لپاره د صلح نه وړاندې اخستل حلال وو.د صلح په وجه حرام شو.او د صلح نه وړاندې مدعى عليه لپاره ددې زياتى مقدار منع كول حرام وو.د صلح په وجه حلال شو.

**وَلِأَنَّ هَذَا صُلْحٌ بَعْدَ دَعْوَى صَحِيحَةٍ** او ځكه چې دا صلح د صحيح دعوه نه روسته ده. **فَيُقْضَى بِجَوَازِهِ** نو ددې د جواز حكم به وركولې شي. **لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ يَأْخُذُهُ عِوَضًا عَنْ حَقِّهِ فِي زَعْمِهِ** ځكه چې مدعى پخپل خيال كې دا مال د خپل حق په عوض كې اخلى. **وَهَذَا مَشْرُوعٌ** اودا مشروع دې. **وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ يَدْفَعُهُ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ عَنْ نَفْسِهِ** او مدعى عليه د خپل ذات نه جګړه لرې كاوه لپاره وركوي. **وَهَذَا مَشْرُوعٌ أَيْضًا** اودا هم مشروع دې. **إِذِ الْمَالُ وِقَايَةُ الْأَنْفُسِ** ځكه چې مال خو د ځانونو د ساتنه لپاره دې. **وَدَفْعُ الرِّشْوَةِ لِدَفْعِ الظُّلْمِ أَمْرٌ جَائِزٌ** او د ظلم لرې كاوه لپاره رشوت وركول جائز دي.

تشريح: ﴿قوله: ولأن هذا صلح...﴾ دا زموږ عقلي دليل دې.چه د امام شافعى رحمه الله د قول ﴿و لأن المدعى عليه يدفع المال لقطع الخصومة عن نفسه و هذا رشوة﴾ ځواب ته هم متضمن دې.حاصل د دليل دادې.چه كومه صلح انكار سره،يا خاموشۍ سره واقع كيږي.هغه د صحيح دعوه نه روسته وي.تردې چې مدعى عليه نه قسم اخستې شي.نو ددې د جواز حكم وركولې شي.ځكه چې مدعى خودا مال د خپل اعتقاد موافق دخپل حق په عوض كې اخلى.اودا امر مشروع دې.او مدعى عليه دا مال د خپل اعتقاد موافق دخپل ځان نه جګړه لرې كاوه لپاره وركوي.اودا هم جائز دي.ځكه چې مال ذاتى ساتنه لپاره دې.اود ظلم دفع كاوه لپاره د رشوت وركاوه اجازت دې.

سوال:د نبى كريم ﷺ ارشاد دې. ﴿لعن الله الراشى و المرتشى﴾ عام دې.نود ظلم دفع كاوه لپاره د رشوت وركاوه جواز د منلو قابل نه دې؟

ځواب:حديث هغه صورت باندې محمول دې.كله چې غيرمشروع امر كې رشوت وركاوه سره صاحب حق ته ضرر محض وي.لكه مثلاً د هغه كار لپاره رشوت وركول،چه حاكم يو وارث د منځ نه اوباسى.كه صرف د

خپل ذات نه نقصان لرې کول مقصود وي.نو جائز دي.ترديږ چې فقيه ابوالليث رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت کړي دي.چه د يتيم نه نقصان لرې کاوه په خاطر وصي لپاره د يتيم د مال نه رشوت ورکول هم جائز دی.او هم په دې فتوی ده.

سوال: اعتبار خو د لفظ د عموم وي.نو ددې څه دليل دې.چه دلته کې حديث پخپل عموم باندې نه دې؟

جواب: ددې دليل هغه نصوص دی.کوم چې په دې اړه کې وارد دی.چه ضرورتونه د محظوراتو (ممنوعاتو) لپاره مبيح دی.لکه آيت؟﴿وما جعل عليكم في الدين من حرج﴾ وغيره.

فائده: امام محمد رحمه الله په سيرکبير کې په طريق د ابوعميس مسعودی ،د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روايت کړي دې.چه دوی په حبشه کې وو.نو دوی (مجبوراً) دوې (دوه) ديناره رشوت ورکړي دې.امام محمد رحمه الله فرمائي.چه په دارالاسلام کې هم که د ظلم دفع کاوه په خاطر د رشوت ور کاوه اړتيا راپيښه شو.نود رشوت ورکونکی په حق کې هيڅ باك نشته.البته مرتشی لپاره مکروه (تحريمی) دې.بيا د جابربن زيد نه روايت دې. ﴿انه قال و ما وجدنا في زمان الحاج او زياد او ابن زياد شيئاً خيراً لنا من الرشا﴾

## د صلح د اقسام ثلاثه تفصيلي احکام

قَالَ ﴿فَإِنْ وَقَعَ الصُّلْحُ عَنْ إِقْرَارٍ﴾ که واقع شی صلح په اقرار سره، ﴿اُعْتُبِرَ فِيهِ مَا يُعْتَبَرُ فِي الْبِيَاعَاتِ﴾ نو په دې کې به دهغه څيزونو اعتبار کولې شی.د کومو چې د خرڅولو په څيزونو کې کيږی. ﴿إِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَالٍ﴾ که صلح د مال نه د مال په بدله کې واقع شی. لِوُجُودِ مَعْنَى الْبَيْعِ بيع معنی موندلو په وجه، وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بِتَرَاضِيهِمَا او هغه د مال په مال مبادله ده.د متعاقدينو په حق کې .ددوی د خپل منځ کې رضامندئ سره. ﴿فَتَجْرِي فِيهِ الشُّفْعَةُ﴾ نو په دې کې به شفع جاری کيږی. ﴿إِذَا كَانَ عَقَارًا﴾ که هغه عقار وی. ﴿وَيُرَدُّ بِالْعَيْبِ﴾ و واپس کولې به شی.د عيب په وجه. ﴿وَيَثْبُتُ فِيهِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ﴾ و ثابتيږی به په دې کې خيار شرط او رؤيت. ﴿وَيُفْسِدُهُ جَهَالَةُ الْبَدَلِ﴾ او فاسدوی به دې لره د بدل مجهول کيدل لِأَنَّهَا هِيَ الْمُفْضِيَةُ إِلَى الْمُنَازَعَةِ خکه چې هم داجګړې پورې حالت رسوی. دُونَ جَهَالَةِ الْمُصَالَحِ عَنْهُ د مصالح عنه مجهول کيدل نه رسری. لِأَنَّهُ يَسْقُطُ خکه چې هغه خو ساقطولې شی. وَيُشْتَرَطُ الْقُدْرَةُ عَلَى تَسْلِيمِ الْبَدَلِ او شرط به وی په بدل سپارلو باندې قادر کيدل.

تشريح: که صلح په مال سره د مال په مقابله کې د مدعی عليه په اقرار سره واقع وی. نودا صلح به د بيع په حکم کې وی.خکه چې دې کې معنی دبيع يعنی د متعاقدينو په حق کې مبادلة المال بالمال موجود ده.نو په دې کې به د بيع احکام جاری کيږی.مثلاً د عقار په صورت کې شفع واجبيدل.د عيب په وجه واپس کول.د خيار شرط او خيار رؤيت حاصليدل.په جهالت بدل سره د عقد صلح باطليدل،د تسليم په بدل باندې قادرکيدل وغيره.نو که صلح د يو کور په بل کور سره اوشوه.نو په دواړو کورونو کې به حق شفعه حاصل وی.اوکه بدل صلح مثلاً غلام وی.او په ده کې څه عيب اوموندې شی.نو دده واپس کول به جائز وی.اوکه د صلح په وخت نې مصالح عليه اونه ليدلو.نو د کتلو نه روسته نې واپس کولې شی.دغه ډول که په صلح کې يوکس خپل خان لپاره درې ورځو پورې خيار شرط اخستل اوغواړی.نو هغه به ددې حقدار وی.او د بدل صلح مجهول کيدل به د صلح لپاره مبطل وی.خکه دا داسې ده.لکه چې بيع کې ثمن مجهول وی.چه دا مبطل د بيع دې.البته د مصالح عنه مجهول کيدل د صلح لپاره قادح (مانع) نه دی.خکه چې دا د مدعی عليه ذمې نه ساقطيږی.اود ساقط جهالت د جګړې سبب نه وی.او په بدل سپارلو باندې قادر کيدل هم ضروری دی.ترديږ که په تختيدلی غلام باندې نې صلح اوکړله.نو صحيح به نه وی.

خو ددې وضاحت ضروری دې.چه د صلح مع اقرار د مال په عوض د مال کې د بيع په معنی کې کيدل، لکه څنګه چې پورته ذکر شو.هغه وخت دی.کله چې صلح د جنس مدعی خلاف باندې واقع شی.که په جنس



مدعی باندې واقع شی.نو د دريو حالتونو نه خالی نه ده.يا به د مدعی نه په اقل وی.يا به ددې برابر وی.يا به ددې نه په زيات وی.که د مدعی نه کم باندې وی.نودا به معاف کول او بری کول وی.اوکه د مدعا په برابر باندې وی.نودا به قبض او استيفاء وی.اوکه په زيات باندې وی.نودا به فضل او ربوا وی.،،صرح بـه في التبيين وغيره،،

فائده: صاحب د عنايه رحمه الله ليکلی دی.چه د کتاب مذکوره حکم پخپل اطلاق باندې نه دې.بلکه په دې کې تفصيل دې.او هغه دا چې د بدلين په لحاظ سره صلح په څلورو وجو ده.① صلح د امر معلوم په معلوم شئ سره وی.دا صلح لامحاله جائز ده.② صلح د مجهول کار په مجهول شئ باندې وی.ددې يو څو صورتونه دی.په دې کې به د تسليم او تسلم اړتيا وی.يا به نه وی.که د تسليم او تسلم اړتيا نه وی.مثلاً مدعی د مدعی عليه په کور کې د خپل حق دعوه اوکړله.او مدعی عليه په هغه مځکه کې د خپل حق دعوه اوکړله.کومه چې د مدعی په قبضه کې ده.او دواړو په دعوه پريښولو باندې صلح اوکړله.نودا هم جائز ده.او که په دې کې د تسليم او تسلم مهلت وی.او دوی دواړه په دې باندې صلح اوکړی.چه په دوی کې به يوکس، يو مال ورکوی.چه دوهم خپله دعوه پريږدی.او هغه مال نې بيان نکړو.يا نې په دې باندې صلح اوکړله.چه په کوم شئ باندې دعوه ده.مدعی عليه هم دا شئ مدعی ته حواله کړی.نو دا صلح به جائز نه وی.③ صلح د امر مجهول په معلوم شئ باندې وی.او په دې کې د تسلم (سپارلو) اړتيا وی.مثلاً د يوکس په قبضه کې يو کور دې.مدعی په دې کې د خپل حق دعوه اوکړله.او د هغې نوم نې وانخستلو بيا دواړو په دې صلح اوکړله.چه مدعی به ده ته مال معلوم ورکوی.چه مدعی عليه هغه شئ مدعی ته حواله کړی.دکوم چې ده دعوه کړې ده.نو دا صلح هم جائز نه ده.اوکه په دې کې د تسليم او تسلم اړتيا نه وی.لکه مثلاً په مذکوره صورت کې په دې باندې صلح اوکړی.چه مدعی خپله دعوه پريږدی.نودا جائز ده.④ صلح د امر معلوم په شئ مجهول باندې وی.په دې صورت کې که د تسليم حاجت وی.نو جائز به نه وی.ګنې جائز به وی.په دې ټولو صورتونو کې اصل کلی دادې.چه کوم جهالت مفضی الی المنازعه وی.اود تسليم او تسلم نه مانع وی.هريو داسې جهالت مفسد د صلح دې.

تنبيه: صاحب د نتائج رحمه الله فرمائی.چه فقهاؤ د صلح به اړه کې اصل کلی دا بيان کړی دې.چه عقد صلح په اقرب عقود باندې محمول کول ضروری دی.(لکه چې ددې اصل بيان روسته راروان دې).نو صاحب د کتاب ددې يوه قاعده بيان کړله.چه صلح به په کومه موقع کې په کوم عقد باندې محمول کولې شی.نو وې فرمائيل.چه صلح مع اقرار که د مال نه د مال په بدله وی.نو په عقد بيع به محمول وی.اوکه د مال نه د منافعو په عوض وی.نو به اجاره به محمول وی.اه

خو دا قاعده نامکمل ده خکه چې صلح مع اقرار کله کله د منافعو نه د مال په عوض يا د منفعت په عوض هم کيږی لکه مثلاً يو کس د بل سړی لپاره پخپل کورکې د يوکاله پورې د اوسيدلو، وصيت اوکړو.بيا هغه مړ شو.او موصی له د سکنی دعوه اوکړله.وارثانو دده د اړخه په معين دراهمو، يا يوکال دغلام په خدمت، يا د خاروی په سوارلئ باندې صلح اوکړله.نودا واړه جائز دی.(لکه څنګه چې په فصل کې راروان دی). حالانکه دا قاعده په کتاب کې ذکر نه ده.(اګرچه د عقد اجاره په معنی کې ده).او دغه ډول صلح مذکوره کله کله د داسې شئ د اړخه هم کيږی.چه هغه نه مال وی.او نه منفعت وی.لکه جنايت عمد نه صلح کول.چه دا هم جائز او په مرتبه د نکاح ده.ترديږ چې کوم شئ په نکاح کې مهر کيدای شی.هم هغه شئ بدل صلح هم کيدای شی.حالانکه قاعده کې داهم ذکر نه دی.خکه چې دا نه د بيع په معنی کې ده.نه د اجاره په معنی کې ده.دغه ډول صلح د رقيت په دعوه سره، د مال په عوض هم کيږی.چه دا د ،،اعتاق علی مال،، په معنی کې ده.اوکله کله د ميړه د نکاح په دعوه سره د مال په عوض کيږی.چه دا د خلع په معنی کې ده.حالانکه دا واړه نه په مذکوره قاعده کې داخل دی.نه ددې نه معلوميږی.

## د مال نه د منافعو په عوض د صلح حکم

(وَإِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَنَافِعَ) اوکه د مال نه د منافعو په بدله کې واقع شي. (يُعْتَبَرُ بِالْإِجَارَاتِ) نو په اجاراتو سره به اعتبار کولې شي. لِوُجُودِ مَعْنَى الْإِجَارَةِ د اجارې معنى موندلو په وجه. وَهُوَ تَمْلِيكُ الْمَنَافِعِ بِمَالٍ او هغه د مال په بدله کې د منافعو مالك كول دي. وَالْاِعْتِبَارُ فِي الْعُقُودِ لِمَعَانِيهَا او په عقود کې اعتبار ددې د معانيو کې کيږي. فَيُشْتَرَطُ التَّوْقِيتُ فِيهَا نو په دې کې به د مودې بيان شرط وي. وَيَبْطُلُ الصُّلْحُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا فِي الْمُدَّةِ او په موده کې د يوکس په مرګ سره به صلح باطليږي. لِأَنَّهُ إِجَارَةٌ ځکه چې دا خو اجاره ده.

**تشريح:** اوکه صلح مع اقرار د مال د اړخه د منافعو په بدله کې واقع شي. نو ددې اعتبار به په اجاره سره کولې شي. ځکه چې دې کې د اجاره معنى يعنى د منافعو تمليك د مال په بدله کې موجود دې. او په دې کې هيڅ شك هم نشته چه عقودو کې صرف د معانيو اعتبار کيږي. لکه چې هبه په شرط د عوض بيع وي. او کفالة په شرط د اصيل د براءت حواله وي. او حواله په شرط د مطالبې د اصيل کفالة وي. نو هرهغه منفعت چې ددې استحقاق په عقد اجاره سره کيږي. د هغې استحقاق په عقد صلح سره هم کيږي.،،و ما لا فلا،،

نو که زيد عمرو باندې د څه شئ دعوه اوکړله. او عمرو ددې اقرار اوکړو. بيا عمرو زيد سره يو کاله پورې د اوسيدلو، يا سوارلۍ باندې د سوريدلو، يا د خپلې کپړې داغوستلو، يا د خپل غلام نه د خدمت حاصلولو، يا پخپله مځکه کې په فصل کرلو باندې صلح اوکړله. نو ددې حکم د اجارې پشان دې. چه لکه څنګه اجاره کې د نفع حاصلولو موده مقررول شرط دي. دغه ډول دې کې شرط دي. او لکه څنګه چې اجاره د احد العاقدين په مرګ سره باطليږي. دغه ډول دا هم باطليږي. اوکه د رهائش په صورت کې د ابداً يا ترمرګه پورې قيد اولګوي. يا د کروندې (فصل کرلو) په صورت کې ئې موده بيان نکړله. نو صلح به جائز نه وي.

**فائده:** د «صلح عن المال بالمنافع...» على الاطلاق د اجاره په معنى کې کيدل، د امام محمد رحمه الله قول دې. تردې چې د مدعى يا مدعى عليه په مرګ سره، دغه ډول د منافعو محل ضائع کيدلو سره، صلح فاسد يږي. که پخپله ضائع شوې وي. يا بل چا ضائع کړې وي. اوس به د قيمت ضمان لازم وي. که ضائع کيدل د نفع حاصلولو نه وړاندې وي. او مدعى به پخپله دعوه کې رجوع کوي. البته که څه نفع ئې حاصله کړې وي. نو ددې په اندازه به دعوه ختميږي. وجه داده چه امام محمد رحمه الله صلح د اجارې په مرتبه کې ګرځولې ده. او اجاره د موجر او مستاجر په مرګ، او د منافعو محل هلاکيدلو سره باطليږي. نو دغه ډول به صلح هم باطليږي. په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله، چه ددوی په نيز صلح مذکور ،، من کل الوجوه ،، د اجارې پشان نه ده. تردې که د کور دعوه ئې اوکړله. بيا ئې ددې اړخه په کور کې په اوسيدلو، يا يوکاله پورې د غلام په خدمت، يا بغداد پورې په سوارلۍ د سوريدلو، يا يو مياشت پورې د کپړې په اغوستلو باندې صلح اوکړله. بيا مدعى يا مدعى عليه مړ شو. يا د فائدو اخستلو نه وړاندې د منفعت محل هلاك شو. نو د قياس په رو سره به صلح باطل وي. هم دا د امام محمد رحمه الله قول دې. امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. که مدعى عليه مړ شو. نو صلح به باطل نه وي. بلکه مدعى به دا وصوله وي. او که مدعى مړ شو. بيا هم د غلام په خدمت اود کور په اوسيدلو به صلح باطل نه وي. بلکه وارث به دده قائم مقام وي. البته په سوارلۍ د سوريدلو، او د کپړې اغوستلو په مسئله کې به باطل وي ځکه چې صلح د جګړې قطع کاوه لپاره وي. او په دوی کې د يوکس په مرګ سره په صلح باطلولو کې جګړه واپس راوستل دي. او په سواريدلو، او اغوستلو کې د خلګو د استعمال طريقه مختلفه وي. په دې وجه به وارث په دې کې قائم مقام نه وي. (کفايه)

## د صلح مع انکار اود صلح مع سکوت بيان

(وَالصُّلْحُ عَنِ السُّكُوتِ) او صلح مع سکوت، وَالْإِنْكَارِ فِي حَقِّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ لِافْتِدَاءِ الْيَمِينِ وَقَطْعِ الْخُصُومَةِ او صلح مع انکار د مدعى عليه په حق کې د قسم فديه ورکولو، او د جګړې ختمولو په طور وي. وَفِي حَقِّ الْمُدَّعِي بِمَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ) او د مدعى په حق کې د معاوضه په مرتبه کې وي. لِمَا بَيَّنَّا په هغه وجه کوم چې موږ بيان



کړله.

**تشريح:** که صلح د مدعى عليه په سکوت، يا دده په انکار سره وي. نودا به د مدعى په حق کې معاوضه او د مدعى عليه په حق کې به د نزاع قطع کاوه اود قسم فديه ورکاوه په مرتبه کې وي. د مدعى په حق کې معاوضه ځکه ده. چه دې پخپل خيال کې د خپل حق عوض اخلي. او د مدعى عليه په حق کې د قسم فديه کيدل ځکه دي. که صلح نه واقع کيدله. نو مدعى عليه باندې به قسم لازميدلو. او جګړه به نه ختميدله. نود مدعى عليه په انکار سره دا خبره ښکاره شوه. چه دې د صلح په طور کوم څه ورکوي. هغه د جګړې ختمولو په غرض سره ورکوي. ممکن ده. چه څوك دا اعتراض اوکړي. چه هرکله عقد يو منفعت سره متصف شو. نو بيا به دا دوهم صفت سره څنګه متصف کيږي.

(وَيَجُوزُ) او دا جائز ده. أَنْ يَخْتَلِفَ حُكْمُ الْعَقْدِ فِي حَقِّهِمَا چې ددوی په حق کې د عقد حکم مختلف شي. كَمَا يَخْتَلِفُ حُكْمُ الْإِقَالَةِ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ وَغَيْرِهِمَا) لکه د اقاله حکم چې د متعاقدينو او ددوی دغير په حق کې مختلف کيږي.

**تشريح:** په دې سره ددې ځواب ورکوي. چه دا خبره ممکن ده. چه ددې صلح حکم د دواړو په حق کې مختلف وي. يعنى مثلاً د مدعى په حق کې صلح په معنى د بيع، يا اجاره وي. او د بل په حق کې نه وي. لکه څنګه چې د اقاله په صورت کې کيږي. چه اقاله د متعاقدينو په حق کې خو فسخ وي. اود بل په حق کې بيع جديد وي. هم دغه ډول عقد نکاح ده. چه ددې حکم د خپلې ښځې په حق کې حلت دې. او ددې د مورې په حق کې حرمت مؤبده دې.

**تنبيه:** د سکوت يا انکار په صورت کې صلح، د مدعى په حق کې على الاطلاق د معاوضه په معنى کې کيدل مونږ نه منو. ځکه که مدعى د يو عين دعوه اوکړله. او مدعى عليه ددې انکار اوکړو. يا ئې ددې نه سکوت اختيار کړو. او مدعى مدعى عليه ته د صلح په طور څه شئ ورکړو. اوعين شئ ئې واخستلو. نو دا صلح جائز ده. لکه څنګه چې فقهاؤ صراحت کړې دې. حالانکه دا د مدعى په حق کې د معاوضه په معنى کې نه ده. ځکه د مدعى خيال خودا دې. چه د کوم عين دعوه ده کړې ده. هغه دده حق دې. «ولا يتصور ان يعاوض إنسان ملك نفسه» بلکه په دې صورت کې هم دا د مدعى په حق کې د خصومت لرې کاوه لپاره دې،، کما صرحوا به أيضا،،

وَهٰذَا فِي الْإِنْكَارِ ظَاهِرٌ او دا په صلح مع انکار کې خو ښکاره ده. وَكَذَا فِي السُّكُوتِ او هم دغه ډول په صلح مع سکوت کې، لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الْإِقْرَارَ وَالْجُحُودَ ځکه چې په دې کې د اقرار او انکار دواړو احتمال دې. فَلَا يَثْبُتُ كَوْنُهُ عِوَضًا فِي حَقِّهِ بِالشَّكِّ نو دده په حق کې عوض کيدل به د شك په وجه نه ثابتيږي.

**تشريح:** کله چې صلح مع انکار وي. نو ددې د مدعى په حق کې د قسم فديه اود خصومت قطع کاوه لپاره کيدل، خو ښکاره دي. اوکه صلح مع سکوت وي. نو ددې د قسم فديه اود خصومت قطع کيدلو لپاره کيدل، ځکه دي. چه په سکوت کنبې لکه څنګه چې د اقرار احتمال دې. هم دغه ډول د انکار احتمال هم دې. او عوض هغه وخت وي. کله چې اقرار وي. نو دده په حق کې د شك په وجه عوض کيدل نه ثابتيږي. حالانکه دا په انکار باندې محمول کول په دې معنى غوره هم دي. چه په دې کې د فارغ الذمه کيدلو دعوه ده. او فارغ الذمه کيدل اصل دي.

قَالَ (وَإِذَا صَالَحَ عَنْ دَارٍ) کله چې ئې په کور سره صلح اوکړله. لَمْ يَجِبْ فِيهَا الشُّفْعَةُ) نو په دې کې به شفع نه واجبيږي. مَعْنَاهُ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. ددې معنى داده. إِذَا كَانَ عَنْ إِنْكَارٍ أَوْ سُكُوتٍ چې کله صلح مع انکار يا صلح مع سکوت وي. لِأَنَّهُ يَأْخُذُهَا عَلَى أَصْلِ حَقِّهِ ځکه چې مدعى عليه دا پخپل اصلى حق باندې اخلي. وَيَدْفَعُ الْمَالَ دَفْعًا لِخُصُومَةِ الْمُدَّعِي اود مدعى خصومت لرې کاوه لپاره ئې ورکوي. وَزَعْمُ الْمُدَّعِي لَا يَلْزَمُهُ، اود

مدعی اعتقاد په ده لازم نه دي. بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَى دَارٍ حَيْثُ يَجِبُ فِيهَا الشُّفْعَةُ په خلاف ددې کله چې صلح په کور باندې اوکړی. په دې کې به شفع واجب وی. لِأَنَّ الْمُدَّعِيَ يَأْخُذُهَا عِوَضًا عَنِ الْمَالِ خکه چې صلح په مال عوض ګنړی. او اخلی. فَكَانَ مُعَاوَضَةً فِي حَقِّهِ نو دده په حق کې به معاوضه وی. فَتَلْزَمُهُ الشُّفْعَةُ بِإِقْرَارِهِ نو دده په اقرار سره به شفعه لازم وی. وَإِنْ كَانَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ يُكَذِّبُهُ اګرچه مدعی علیه دې دروغجن ګنړی.

تشریح: د مدعی په حق کې د صلح مذکور معاوضه کیدلو. اود مدعی علیه په حق کې د قسم فدیه باندې متفرع ده. د مسئلې وضاحت دادې. چه یوسړی په بل باندې د کور دعوه اوکړله. او مدعی علیه ددې انکار اوکړو. یا هغه خاموش پاتې شو. بیا ده څه (شئ یا مال) ورکړو. اود کور په معامله کې ئې صلح اوکړله. نو په دې کورکې به شفع واجب نه وی. خکه چې مدعی علیه دا د خپل اصلی حق په وجه باندې اخلی. دا نه چې هغه نه ئې (د بیع په ذریعه) اخلی. البته مدعی ضرور دا پخپل اعتقاد کې معاوضه ګنړی. خود مدعی دا اعتقاد مدعی علیه باندې لازم نه دي. «لأن المرء إنما يؤخذ بما فی زعمه و لا يلزمه زعم غيره»

اوکه مدعی د مال دعوه اوکړله. او مدعی علیه یو کور ورکړو. او صلح ئې اوکړله. نو په دې کې به شفعه واجب وی. خکه چې مدعی دا د خپل مال عوض ګنړی. او اخلی یې. نو دده په حق کې معاوضه شوه. نو شفعه به واجب وی. اګرچه مدعی علیه دا دروغ ګنړی. آیا نه ګورې که څوك سړې دا اووائی. چه ما دا کور فلانی نه اخستې دې. او فلانې منکر دې. نو شفیع دا په شفعه کې اخستې شی. دغه ډول که دا دعوه ئې اوکړله. چه ده خپل کور د فلانی په لاس خرڅ کړې دې. او هغه انکار اوکړی. بیا هم شفیع شفعه کې اخستلې شی. ،، لأن زعمه حجة فی حق نفسه ،،

### د صلح مع اقرار نه روسته د مستحق راوتلو حکم

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ إِقْرَارٍ) کله چې صلح مع اقرار وی. وَاسْتُحِقَّ بَعْضُ الْمُصَالَحِ عَنْهُ او څه مصالح عنه د بل چا ثابت وی. رَجَعَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ بِحِصَّةِ ذَلِكَ مِنَ الْعِوَضِ) نو مدعی علیه به ددې په اندازه بدلې نه واپس اخلی. لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ مُطْلَقَةٌ كَالْبَيْعِ خکه چې دا خو د بیع پشان مطلق معاوضه ده. وَحُكْمُ الِاسْتِحْقَاقِ فِي الْبَيْعِ هَذَا او په بیع کې د استحقاق حکم هم دادې.

تشریح: که مدعی علیه د مدعی د دعوې اقرار اوکړو. او صلح ئې اوکړله. بیا مصالح عنه یعنی د کوم شئ د ارخه ئې چې صلح کړې وه. په هغې کې څه برخه یوکس خپل استحقاق ثابت کړو. او مدعی علیه نه ئې واخستلو. نو مدعی علیه به ددې برخې (حصې) په مقدار خپل عوض واپس اخلی. خکه چې صلح مع اقرار په حقیقت کې د بیع پشان معاوضه مطلقه ده. اود معاوضه حکم هم دادې. چه د استحقاق په وخت رجوع په قدر د مستحق وی. ددې مثال دادې. چه زید د یوکور دعوه اوکړله. کوم چې د عمرو په قبضه کې دې. او عمرو د اقرار نه روسته زید سره په سل درهمه باندې صلح اوکړله. بیا نصف کور د بل چا راؤ وتلو. نو عمرو به زید نه پنځوس درهمه واپس اخلی.

(وَإِنْ وَقَعَ الصُّلْحُ عَنْ سُكُوتٍ أَوْ إِنْكَارٍ) او که صلح مع سکوت یا مع انکار واقع شی. فَاسْتُحِقَّ الْمُتَنَازَعُ فِيهِ بیا د متنازع فیه حقدار پیدا شی. رَجَعَ الْمُدَّعِي بِالْخُصُومَةِ وَرَدَّ الْعِوَضَ) نو مدعی به حقدار ته جګړې او عوض واپس کوی. لِأَنَّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَا بَذَلَ الْعِوَضَ خکه چې مدعی علیه مال نه وو ورکړې. إِلَّا لِيَدْفَعَ خُصُومَتَهُ عَنْ نَفْسِهِ، مګر ددې لپاره چې د خپل ذات نه جګړې لرې کړی. فَإِذَا ظَهَرَ الِاسْتِحْقَاقُ تَبَيَّنَ او هرکله چې استحقاق ښکاره شو. أَنْ لَا خُصُومَةَ لَهُ نودا واضحه شوه. چه د جګړې حق نه وو. فَيَبْقَى الْعِوَضُ فِي يَدِهِ غَيْرَ مُشْتَمِلٍ عَلَى غَرَضِهِ نود مدعی په قبضه کې بدله به دې طریقه پاته پاتې شوهچه د مدعی علیه غرض ته ګټه نه دې. فَيَسْتَرِدُّهُ نو واپس به اخلی. وَإِنِ اسْتُحِقَّ بَعْضُ ذَلِكَ او که د بعض برخې (حصې) حقدار راؤخی. رَدَّ حِصَّتَهُ وَرَجَعَ بِالْخُصُومَةِ فِيهِ نو ددې په اندازه به هغې کې جګړې واپس کوی. لِأَنَّهُ خَلَا الْعِوَضُ فِي هَذَا الْقَدْرِ عَنِ الْغَرَضِ. خکه چې عوض هم په دومره



مقدار کې غرض نه خالی دې.

تشریح: اوکه صلح مع سکوت یا مع انکار وی. بیا متنازع فیه د بل چا راؤ وتلو. مثلاً دعمر په قبضه کې یو کور دې. زید د هغې دعوه اوکړله. چه دا زما دې. عمرو ددې انکار اوکړو. یا خاموش پاتې شو. بیا هغه سل درهمه ورکړل. او صلح ئې اوکړله. ددې نه روسته دا کور د بل چا راؤ وتلو. نو زید چې د عمرو نه کوم سل درهم اخستی وو. هغه به هغه ته واپس کوی. اومستحق سره به خصومت کوی. خکه چې عمرو زید ته سل درهمه خکه ورکړی وو. چه جګړه ختمه شی. او دده سره مصالح عنه بلا خصومت پاته پاتې شی. او هرکله چې دا د بل چا مملوك راؤ وتلو. نو دده مقصد حاصل نشو. اودا هم ښکاره شوه. چه عمرو سره د زید خصومت په ناجائزه وو. نو هغه به سل درهمه واپس اخلی. او زید به مستحق سره جګړه کوی. خکه چې هغه اوس د مدعی علیه قائم مقام دې. اوکه د متنازع فیه څه برخه مستحق راؤ وتله. نو د صلح په عوض کې به هم د هغې په اندازه واپس کوی. او هم په دغه اندازه کې به مدعی مستحق سره خصومت کوی. خکه چې په دومره برخه کې د مدعی علیه مقصد حاصل نشو.

وَلَوِ اسْتُحِقَّ الْمُصَالَحُ عَلَيْهِ عَنْ إِقْرَارٍ او که په صلح مع اقرار کې د یوکس مصالح علیه راؤخی. رَجَعَ بِكُلِّ الْمُصَالَحِ عَنْهُ نو کُل مصالح علیه دې واپس واخلی. لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ، خکه چې دا خو مبادله وه. وَإِنِ اسْتُحِقَّ بَعْضُهُ او که بعض برخه مستحق راؤ وتله. رَجَعَ بِحِصَّتِهِ. نو هم ددې په اندازه به واپس اخلی. وَإِنْ كَانَ الصُّلْحُ عَنْ إِنْكَارٍ أَوْ سُكُوتٍ او که صلح مع انکار یا صلح مع سکوت وی. رَجَعَ إِلَى الدَّعْوَى فِي كُلِّهِ أَوْ بِقَدْرِ الْمُسْتَحَقِّ إِذَا اسْتُحِقَّ بَعْضُهُ نو مدعی به د پوره یا د مستحق په اندازه دعوه ارخ ته رجوع کوی. لِأَنَّ الْمُبْدَلَ فِيهِ هُوَ الدَّعْوَى، خکه چې مبدل په دې کې دعوه ده.

تشریح: او که مصالح علیه یعنی بدل صلح کې د یو کس استحقاق ثابت شی. نو مدعی به خپلې دعوې ارخ ته رجوع کوی. یعنی بیا به دعوه دائر کوی. که پوره بدل صلح د بل کس ثابت شی. نود پوره مصالح عنه دعوه به کوی. او که بعض وی. نو د بعض دعوه به کوی. خکه چې مدعی خپله کومه دعوه پرېښودې ده. هغه ئې په دې وجه کړې ده. چه دده په قبضه کې بدل صلح صحیح سلامت راشی. او هرکله چې دا د بل چا راؤ وتله. نو هغه به مبدل یعنی دعوه ارخ ته رجوع کوی.

خودا هغه وخت دی. کله چې بدل صلح مال عین وی. او مستحق صلح جائز نه وی ګرځولې. اوکه ده صلح جائز اوګرځوله. نو مال عین به مدعی ته حواله کوی. او مستحق به مدعی علیه باندې ددې په قیمت کې رجوع کوی. که دا د ذات القیم څنې وی. اوکه بدل صلح دین وی. لکه دراهم او دنانیر، او مکیل او موزون (بغیر اعیانهما). نو د استحقاق په وجه به صلح نه باطلیږی. خو ددې په مثل به رجوع کوی. خکه چې د استحقاق په وجه استیفاء باطلیږی. نو ګویا ده اوس هم پوره حق نه دې وصول کړې. ،، کذا فی شرح الطحاوی ،، (کفایه).

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا اودا ددې خلاف دی. إِذَا بَاعَ مِنْهُ عَلَى الْإِنْكَارِ شَيْئًا کله چې مدعی دده په لاس څه شئ د انکار باوجود خرڅ کړو. حَيْثُ يَرْجِعُ بِالْمُدَّعَى چې په دې کې به مدعی واپس اخلی. لِأَنَّ الْإِقْدَامَ عَلَى الْبَيْعِ خکه چې بیع باندې اقدام کول، إِقْرَارٌ مِنْهُ بِالْحَقِّ لَهُ، دده د ارخه اقرار دې. مدعی لپاره د حق کیدلو. وَلَا كَذَلِكَ الصُّلْحُ او په صلح کې دا خبره نشته. لِأَنَّهُ قَدْ يَفْعَلُ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ، خکه چې صلح کله کله د خصومت په غرض سره کیږی. وَلَوْ هَلَكَ بَدَلُ الصُّلْحِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ او که بدل صلح هلاکه شوه. د سپارلو نه وړاندې، فَالْجَوَابُ فِيهِ نو ددې حکم په دواړو صورتونو کې داسې دې. كَالْجَوَابِ فِي الِاسْتِحْقَاقِ فِي الْفَصْلَيْنِ لکه څنګه چې د استحقاق حکم دې.

تشریح: د حکم مذکوره تفصیل هغه وخت دې. کله چې په عقد صلح کې د لفظ بیع تکلم نه وی. اوکه په دې کې د بیع تکلم وی. مثلاً یو کس په بل باندې د یوکور دعوه اوکړله. او مدعی علیه ددې انکار اوکړو. بیا

ددې د کور د دعوې د اړخه يو غلام باندې د بيع په الفاظو سره صلح اوشوه .په دې طريقه چې مدعى ، مدعى عليه ته اووئيل ،، بعت منك هذا العبد بهذا الدار ،، ددې په ځواب کې مدعى عليه اووئيل ،، اِشتريت ،، بيا په غلام کې د بل يو کس استحقاق ثابت شو.نو په دې صورت کې به مدعى ،د مدعى عليه نه دا کور واپس اخلي.په کوم ئې چې دعوه کړې وه.دعوه اړخ ته د رجوع اړتيا نشته.ځکه چې د مدعى عليه اخستلو باندې اقدام کول انکار نه دې.بلکه ددې خبرې اقرار دې.چه د مدعى په دې کې حق دې.ځکه چې سرې خپل ذاتي ملك نه اخلي.

## د تعين نه بغير کور کښې د خپل حق دعوه کول

قَالَ (وَإِنْ ادَّعَى حَقًّا فِي دَارٍ) يوکس په يو کور کې دعوه اوکړله. وَلَمْ يُبَيِّنْهُ و ددې تعين ئې اونکړو. فَصُولِحَ مِنْ ذَلِكَ نو ده سره صلح اوکړې شوه. ثُمَّ اسْتَحَقَّ بَعْضَ الدَّارِ بيا ( يوکس) د بعض کور حقدار راؤ وتلو. لَمْ يَرُدَّ شَيْئًا مِنْ الْعِوَضِ نو مدعى به په عوض کې هيڅ هم نه واپس کوی. لِأَنَّ دَعْوَاهُ يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ فِيمَا بَقِيَ) ځکه ممکن ده.چه دده دعوه په پاتـه مانده کې وی. بِخِلَافِ مَا إذَا اسْتَحَقَّ كُلُّهُ په خلاف ددې کله چې پوره کور مستحق راوځي. لِأَنَّهُ يَعْرَى الْعِوَضُ عِنْدَ ذَلِكَ عَنْ شَيْءٍ ځکه چې دغه وخت به عوض د داسې شئ نه خالی وی. يُقَابِلُهُ کوم چې ددې مقابل وی. فَيَرْجِعُ بِكُلِّهِ نو پوره عوض به واپس اخلي. عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ. لکه څنګه چې موږ وړاندې بيان کړی دی.په بيوع کې

تشريح: مدعى په يوکور کې د خپل حق دعوه اوکړله.او دا ئې بيان نکړو.بيا ئې دعوې نه صلح اوکړله.ددې نه روستـه د کور په څه برخه کې استحقاق راؤ وتلو.نو مدعى به بدل صلح کې هيڅ نـه واپس کوی.ځکـه چې هرکله ده په کور کې څه ځانې متعين نکړو.نو کيداې شی.چه دده دعوه د کور په پاتـه برخه کې وی.په خلاف ددې کله چې استحقاق په پوره کور کې ثابت وی.چه مدعى به پوره عوض واپس کوی.ځکـه چې دې صورت کې به بدل صلح دڅه شئ په مقابله کې نه وی.نو مدعى عليه به خپل پوره عوض واپس اخلي.

وَلَوْ ادَّعَى دَارًا که د کور دعوه اوکړله. فَصَالَحَهُ عَلَى قِطْعَةٍ مِنْهَا بيا ئې ددې په يوه برخه باندې صلح اوکړله. لَمْ يَصِحَّ الصُّلْحُ نو صلح به صحيح نه وی. لِأَنَّ مَا قَبَضَهُ مِنْ عَيْنِ حَقِّهِ ځکه چې مدعى په کوم باندې قبضه کړې ده.هغه دده دعين حق څخنې دې. وَهُوَ عَلَى دَعْوَاهُ فِي الْبَاقِي. او هغه په پاتـه کې پخپله دعوه باندې دې.

تشريح: که مدعى عليه د کور دعوه اوکړله.او مدعى عليه ددې په يوه برخه باندې صلح اوکړله.مثلاً ددې په يو متعين کمرې باندې ئې صلح اوکړله.نو صلح به صحيح نه وی.ځکه چې مدعى کوم څه قبضه کړل.هغه دده دعين حق يوه برخه ده.او په پاتـه کور کې دې پخپله دعوه باندې پاتـه دې.بيا که مدعى د پاتـه کور په دعوه باندې ګواهان قائم کړی.نو ددې سماعت به کولې شی.او که نه؟ نو شيخ نجم الدين النسفي په شرح کافی کې فرمائيلی دی.چه سماعت به کولې شی.ځکه چې ده خپل بعض حق وصول کړې دې.او د پاتـه نه ئې ابراء کړې ده.او ابراء عن العين باطل ده.نو ددې وجود او عدم برابر دې.او شيخ الاسلام پخپله شرح کې ذکر کړی دی.چه سماعت به نه کيږی.هم دې تـه صاحب د نهايـه رحمه الله ظاهرالرواية وئيلی دی.وجه داده.چه ابراء د عين او دعوه دواړو سره متعلق ده.او ابراء عن الدعوه صحيح ده.اګرچه ابراء عن العين باطل ده.

وَالْوَجْهُ فِيهِ أَحَدُ أَمْرَيْنِ :او ددې په جواز کې د دوې (دوه) خبرو نه يوه ده. إمَّا أَنْ يَزِيدَ دِرْهَمًا فِي بَدَلِ الصُّلْحِ يا به په بدل صلح کې يو درهم زياتوی. فَيَصِيرَ ذَلِكَ عِوَضًا عَنْ حَقِّهِ فِيمَا بَقِيَ ، چې دا دده د پاتـه کور د حق عوض شی. أَوْ يُلْحِقَ بِهِ ذِكْرَ الْبَرَاءَةِ عَنْ دَعْوَى الْبَاقِي يا عوض سره د پاتـه کور د دعوې نه د براءت ذکر متعلق کړی.

تشريح: يعنی په يوه برخه د کور باندې د صلح صحيح کيدلو حيله داده.چه يا خويـه بدل صلح باندې يو درهم زياتی کړی.چه دا درهم دده د پاتـه کور د حق عوض شی.يا عوض صلح سره د پاتـه کور دعوه نه براءت



ذکرکول ملاؤ کړی. «بان يقول برئت من دعوى فى هذه الدار» نود پاتـه څخه به براءت کيږی. «لمصادفة البراءة الدعوى و هو صحيح».

## د اموالو د دعوې په بدل کښې د صلح حکم

فَصْلٌ) فصل (وَالصُّلْحُ جَائِزٌ عَنْ دَعْوَى الْأَمْوَالِ) و صلح جائز ده.د اموالو د دعوې نه. لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَيْعِ ځکه چې دا د بيع په معنى کې ده. عَلَى مَا مَرَّ. لکه څنګه چې تير شوی دی. قَالَ (وَالْمَنَافِعِ) ود منافعو د دعوې نه لِأَنَّهَا تُمْلَكُ بِعَقْدِ الْإِجَارَةِ ځکه چې منافع مملوك کيږی.په عقد اجاره سره. فَكَذَا بِالصُّلْحِ) نو هم دغه ډول صلح هم ده.

تشريح: د صلح د مقدماتو، شرائطو، او انواعو نه روستـه هغـه شيان بيانوی.د کوم د اړخه چې صلح جائز ده.اود کوم د اړخه چې صلح جائز نه ده.که مدعى د مال دعوه اوکړی.نود مال د دعوه د اړخه صلح کول جائز دی.ځکه چې دا صلح د بيع په معنى کې ده. «على ما مر فى اول كتاب الصلح» نود کوم شئ بيع چې جائز ده.د هغې د اړخه صلح هم جائز ده.د منفعت د دعوه داړخه هم صلح کولې شی.مثلاً زيد د عوی اوکړله.چه فلانی سړی زما لپاره په دې کور کې د يوکاله پورې د اوسيدلو وصيت کړې دې.وارثانو هغـه تـه څـه مال ورکړو.او صلح ئې اوکړله.نو صلح جائز ده.ځکه چې د عقد اجاره په ذريعه منافع مملوك کيږی.نود صلح په ذريعه هم مملوك کيږی.

قوله: لانها تملك... » په دې تعليل باندې د شيخ علاء الدين اسبيجابی د شرح کافی په دې مضمون سره اشکال کيږی.که يوکس د يو سړی لپاره د خپل غلام د يو کال د خدمت وصيت اوکړو.او غلام دده د دريمې برخې (حصې) مال نه اوځی.نو وارثانو دده د خدمت د اړخه په دراهمو، يا د کور په اوسيدلو، يا په سوارلئ د سوريدلو، يا د کپړو په اغوستلو، يا د بل غلام په خدمت باندې صلح اوکړله.نودا جائز ده.او د قياس تقاضا د عدم جواز ده.ځکه چې موصى له په مرتبه د مستعير دې.چه څوك د بدل په ذريعه د منافعو مالك نشی جوړولې.وجه داشکال ښکاره ده.چه هرکله موصى له د منفعت مالك نشی جوړولې.نو تعليل « لانها تملك بعقد الاجارة» صحيح نشو؟

ځواب دادې.چه موصى له اګرچه حقيقتاً مالك نشی جوړولې.خو حکماً جوړولې شی.په دې معنى چې هغه د بدل په ذريعه ددې په اسقاط باندې قادر وی. «فمعنى التعليل ان جنس المنافع يملك حقيقتا».

وَالْأَصْلُ فِيهِ او اصل دادې. أَنَّ الصُّلْحَ يَجِبُ چور عَلَى أَقْرَبِ الْعُقُودِ إلَيْهِ چې صلح ددې قريب تر عقد باندې محمول کړې شی. وَأَشْبَهِهَا بِهِ احْتِيَالًا لِتَصْحِيحِ تَصَرُّفِ الْعَاقِدِ مَا أَمْكَنَ او په هغې باندې کوم چې ددې زيات مشابه وی.په قدر د امکان د عاقد تصرف صحيح کاوه حيلې دپاره.

تشريح: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه دلتـه اصل قاعده داده.چه صلح په داسې عقد باندې محمول کول پکار دی.کوم چې صلح تـه زيات نژدې او ددې سره زيات مشابه وی.چه څومره پورې ممکن وی.په يوه حيله سره د عاقل فعل صحيح کړې شی.نوکه ممکن وی.نو صلح په معنى د بيع واخستلې شی.ګنی په معنى د اجاره، يا په معنى معاف کاوه او د براءت به اخستې شی.

قَالَ (وَيَصِحُّ عَنْ جِنَايَةِ الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ) او صحيح ده.د جنايت عمد او جنايت خطاء دعوې نه.

تشريح: د جنايت نفس ( يعنی د قتل) دعوه اود جنايت مادون النفس (لکه د لاس کټ کولو) د دعوې د اړخه هم صلح صحيح ده.که جنايت قصداً وی.اوکه په غلطئ سره وی.نو که قاتل د مقتول بعضو اولياؤ سره دمال په لالچ يا عاجزئ سره صلح اوکړله.نو ددوی په قصاص پريښولو سره به پاتـه خلګو تـه هم د قصاص اختيار نه وی.او صلح به جائز وی.اوکه قتل خطاء وی.نو په دې کې به صلح په ديت سره وی.

## اموالو باندې د صلحې کولو دليلونه

أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى بهرحال اول خو د الله تعالی دقول په وجه، ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ﴾ بیا چاته چې معاف کړې شي دده د رور د اړخه څه هم، ﴿فَاتِّبَاعٌ﴾ نو تابعداري کول پکار دي، الْآيَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي. إِنَّهَا نَزَلَتْ فِي الصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ چې دا آيت په صلح کې نازل شوې دي.

**تشریح:** په رومبي یعنی د عمد په صورت کې صلح ځکه صحیح ده.چه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ﴾، بیا چاته چې معاف کړې شي.دده د رور د اړخه څه هم،نو تابع داري کول پکار دي.د دستور موافق،او اداکول پکار دي.په ښه طریقه، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائي.چه دا آيت د صلح په اړه کې نازل شوې دي.معنی داده. ﴿من أعطى له ، من دم أخيه المقتول شي و ذالك بالصلح﴾ یعنی که د مقتول وارثان د صلح په طور د مال په څه مقدار باندې راضي شو.او د قصاص نه منع شو.نو قاتل له پکار دي.چه هغه معاوضه ښه په حسن سلوك او خوشحالئ سره اداکړي.

او د سلفو يو جماعت نه نقل دي.چه په آيت کې د مقتول د بعضو اولياؤ معاف کول مراد دي.او معنی داده.چه کوم قاتل ته د خپل دینی رور، یعنی د مقتول په قصاص کې څه معاف کړې شو.یعنی مثلاً دده په اولیاؤ کې یو کس معاف کړل.نو پاته لپاره به دیت د میراث د برخې (حصې) په اندازه وي.نو دوی ته حکم دې چه په ښه طریقه قاتل پسې لازم اولګي.یعنی په ده باندې زور زیاتې اونکړي.او قاتل ته حکم دې.چه په ښه طریقه اداکړي.یعنی تاخیر اوکمي اونکړي.(کفایه)

وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ النِّكَاحِ،اودا په منزله دنکاح ده. حَتَّى أَنَّ مَا صَلُحَ مُسَمًّى فِيهِ تردې چې کوم شئ په نکاح کې مهر کیداې شي. صَلُحَ هَاهُنَا هم هغه دلته کې بدل کیداې شي. إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِغَيْرِ الْمَالِ خکه چې دې کې هریو د مال مبادله ده. بغیر د مال نه. إِلَّا أَنَّ عِنْدَ فَسَادِ التَّسْمِيَةِ هَهُنَا سوا ددې نه چې د تسمیې د فساد په وخت، يُصَارُ إِلَى الدِّيَةِ دلته به رجوع کولې شي.دیت اړخ ته. لِأَنَّهَا مُوجَبُ الدَّمِ خکه چې د وینې عوض اصل کې هم دا وو. وَلَوْ صَالَحَ عَلَى خَمْرٍ اوکه په شرابو نې صلح اوکړله. لَا يَجِبُ شَيْءٌ نو هیڅ به واجب نه وي. لِأَنَّهُ لَا يَجِبُ بِمُطْلَقِ الْعَفْوِ. خکه چې مطلق عفو کې هیڅ نه واجبیږي. وَفِي النِّكَاحِ يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْفَصْلَيْنِ او نکاح کې مهر مثل واجبیږي.په دواړو صورتونو کې. لِأَنَّهُ الْمُوجَبُ الْأَصْلِيُّ،خکه چې موجب اصلي هم دا دې. وَيَجِبُ مَعَ السُّكُوتِ عَنْهُ حُكْمًا،اود مهر نه د سکوت په وخت به هم حکماً مهرمثل واجب وي. وَيَدْخُلُ فِي إِطْلَاقِ جَوَابِ الْكِتَابِ الْجِنَايَةُ فِي النَّفْسِ وَمَا دُونَهَا،اود کتاب په مطلق ځواب کې قتل د نفس او ددې نه کم هم داخل دي.

**تشریح:** د قتل عمد نه صلح کول، په مرتبه د نکاح دي.تردې چې کوم شئ په نکاح کې مهر کیداې شي.هم هغه دلته کې بدل صلح هم کیداې شي.خکه چې په نکاح او صلح کې هریو مبادله د مال بغیرالمال ده.خو دومره خبره ده.چه کوم مال صلح مقرر شوې دې.که په دې کې څه فساد وي.نو دیت اړخ ته به رجوع کولې شي.خکه چې د قتل عوض په اصل کې هم دا وو.اوکه په قتل عمد کې نې په شرابو باندې صلح اوکړله.نو هیڅ به واجب نه وي.خکه چې په مطلق معاف کاوه کې هیڅ نه واجبیږي.یعنی هرکله چې شراب مال متقوم نه دې.نو ددې ذکر او عدم ذکر برابر دې.نو صرف معاف کول پاتې شو.چه په دې کې مال نه واجبیږي.په خلاف د نکاح، چې په دې کې مهر مسمی فاسد وي.یا شراب وي.په دواړو صورتونو کې مهر واجبیږي.خکه چې دې کې مهر مثل اصلي موجب دې. اوکه د سره چوپوالي وي.بیا هم حکماً مهر مثل واجبیږي.

وَهَذَا بِخِلَافِ الصُّلْحِ عَنْ حَقِّ الشُّفْعَةِ عَلَى مَالٍ حَيْثُ لَا يَصِحُّ اودا خلاف دې د حق شفعه نه په مال باندې د صلح کولو.چه دا صحیح نه ده. لِأَنَّهُ حَقُّ التَّمَلُّكِ،خکه چې شفعه حق تملك دې. وَلَا حَقَّ فِي الْمَحَلِّ قَبْلَ التَّمَلُّكِ. او محل کې هیڅ حق نشته.د تملك نه وړاندې. وَأَمَّا الْقِصَاصُ پاتې شو قصاص فَمِلْكُ الْمَحَلِّ فِي حَقِّ الْفِعْلِ نودا د محل ملك دې.د فعل په حق کې. فَيَصِحُّ الِاعْتِيَاضُ عَنْهُ نو ددې نه عوض اخستل صحیح دی. وَإِذَا لَمْ يَصِحَّ الصُّلْحُ او هرکله



چې صلح صحیح نشوه. تَبْطُلُ الشُّفْعَةُ نو شفعه به باطل وي. لِأَنَّهَا تَبْطُلُ بِالْإِعْرَاضِ وَالسُّكُوتِ،خکه چې دا په اعراض او سکوت سره باطلیږي.

**تشریح:** د قتل عمد وغیره نه صلح کول جائز دي.لکه څنګه چې پورته ذکر شو.خو که د شفیع سره په څه مال باندې صلح مقرر شوه.چه دې د شفعه دعوه پرېږدي.نودا په اتفاق د ائمه اربعه جائز نه دی.نو مال به نه واجبیږي.وجه د توپیر داده.چه شفعه په داسې محل کې د ملکیت حاصلولو حق دې.کوم محل چې د غیر مملوك دې.او دا ښکاره ده.چه د غیرمملوك محل کې دده هیڅ حق نشته .ترکومه پورې چې ددې محل مالك نشي.په خلاف د قصاص، چې په دې کې محل یعنی د قاتل په نفس کې د خپل فعل قصاص پوره کاوه ملکیت حاصل دې.نو دې ملکیت سره په عوض اخستلو به صلح جائز وي.هرکله چې ددې پورتنی بیان مطابق شفعه کې صلح صحیح نشوه.نو شفعه به باطل وي.خکه چې شفعه په اعراض او سکوت سره باطلیږي.

وَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ بِمَنْزِلَةِ حَقِّ الشُّفْعَةِ او کفیل بالنفس (د نفس حاضرولو ضامن) په مرتبه د حق شفعه دې. حَتَّى لَا يَجِبُ الْمَالُ بِالصُّلْحِ عَنْهُ،تردې چې په دې کې صلح کاوه سره مال نه واجبیږي. غَيْرَ أَنَّ فِي بُطْلَانِ الْكَفَالَةِ رِوَايَتَيْنِ صرف دومره خبره ده.چه د کفالت په باطلیدلو کې دوې (دوه) روایتونه دي. عَلَى مَا عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ لکه څنګه چې پخپله موقع باندې معلومه ده.

**تشریح:** کفاله بالنفس یعنی د حاضرولو ضامن جوړیدل، د صلح په جواز کې د حق شفعه پشان دې.تردې چې دې کې هم د صلح په وجه مال نه واجبیږي.خو په دې دواړو کې توپیر دادې.چه په حق شفعه کې د مال په څه اندازه باندې صلح کاوه سره حق شفعه د یو روایت مطابق باطلیږي.پاتې شو د حاضرولو ضامن کیدل،نو ددې د باطلیدلو په اړه کې دوې (دوه) روایتونه دي.روایت د ابوحفص کوم چې په کتاب الشفعه، کتاب الحواله، او کتاب الکفاله ذکر دې.او مفتی به قول دادې.چه کفالت باطلیږي.او روایت د ابوسلیمان کوم چې په کتاب الصلح کې ذکر دې.د هغې مطابق نه باطلیږي.

## د خطاء جنایت په عوض د صلح حکم

وَأَمَّا الثَّانِي وَهُوَ جِنَايَةُ الْخَطَإِ بهرحال ثانی یعنی جنایت د خطاء (قتل خطاء)، فَلِأَنَّ مُوجَبَهَا الْمَالُ نو خکه چې ددې موجب مال دې. فَيَصِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ،نودا صلح به په مرتبه د بیع کې شي. إِلَّا أَنَّهُ لَا تَصِحُّ الزِّيَادَةُ عَلَى قَدْرِ الدِّيَةِ خو د دیت مقدار نه زیاتې جائز نه دې. لِأَنَّهُ مُقَدَّرٌ شَرْعًا خکه چې دا شرعی محدود اندازه ده. فَلَا يَجُوزُ إِبْطَالُهُ نو ددې باطلول به جائز نه وي. فَتُرَدُّ الزِّيَادَةُ،نو زیاتوالې به واپس کولې شي. بِخِلَافِ الصُّلْحِ عَنِ الْقِصَاصِ په خلاف د قصاص نه د صلح کولو، حَيْثُ تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَى قَدْرِ الدِّيَةِ چې دا د دیت نه په زیات مقدار هم جائز ده. لِأَنَّ الْقِصَاصَ لَيْسَ بِمَالٍ خکه چې قصاص مال نه دې. وَإِنَّمَا يَتَقَوَّمُ بِالْعَقْدِ، چې ددې تقوم (او ثبوت) خو په عقد سره کیږي.

**تشریح:** دوهم یعنی قتل خطاء نه د صلح جائز کیدلو وجه داده.چه د جنایت خطاء موجب مال دې.یعنی دیت او صلح عن المال بلا اشکال جائز ده.نو دا صلح به په مرتبه د بیع کې شي.البته دومره خبره ضرور ده.چه په دې صلح کې د دیت د مقدار نه زیات مقررول جائز نه دي.خکه چې د دیت مقدار شرعاً محدود مقرر دې.چه دا نشي باطلولې.په خلاف د قصاص،چه په دې سره کومه صلح اوشوه.په دې کې د دیت مقدار نه زیات هم جائز دې.خکه چې قصاص مال نه دې.ددې تقوم خو صرف خپل منځ کې اتفاق سره کیږي.په تقدیر شرعی سره نه کیږي.

وَهَذَا اودا هغه وخت دی. إِذَا صَالَحَ عَلَى أَحَدِ مَقَادِيرِ الدِّيَةِ،کله چې د دیت په مقدار کې په یو مقدار باندې صلح اوکړي. أَمَّا إِذَا صَالَحَ عَلَى غَيْرِ ذَلِكَ که ددې نه په علاوه باندې نې صلح اوکړله. جَازَ نو جائز ده. لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ بِهَا،خکه

چي دا د دیت نه مبادله ده. إِلَّا أَنَّهُ يُشْتَرَطُ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ کَي خو هم په دې مجلس کي قبضه شرط ده. لَا يَكُونَ افْتِرَاقًا عَنْ دَيْنٍ بِدَيْنٍ. چه جدائي د دین نه د دین په عوض نه وي.

**تشریح:** د قتل خطاء نه په صلح کولو کي د دیت نه زیاتي مقدار جائز نه کیدل، هغه وخت دی. کله چي د دیت شرعي مقادیر ثلاثه (زر دینار، لس زره دراهم، سل اوښان) کي په یو مقدار باندې صلح واقع شوي وي. که ددې نه علاوه په کوم یو کیلي یا وزني شئ باندې صلح اوکړله. نو په دې کي زیاتوالې هم جائز دې. خکه چي دیت نه مبادله ده. خو هم په دې مجلس کي بدل باندې قبضه کول شرط دی. خکه چي دیت دین وو. کله چي ددې معاوضه مقبوض وي. نو هغه به هم دین وي. حالانکه د دین مبادله دین سره د حدیث په حکم جائز نه ده. نو افتراق عن دین بدین لازمیږي. او دا ناجائز ده.

وَلَوْ قَضَى الْقَاضِي بِأَحَدِ مَقَادِيرِهَا که قاضي د دیت دځه مقدار حکم اوکړو. فَصَالَحَ عَلَى جِنْسٍ آخَرَ مِنْهَا بِالزِّيَادَةِ او هغه ددې نه علاوه باندې زیات سره صلح اوکړله. جَازَ نو جائز ده. لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ الْحَقُّ بِالْقَضَاءِ خکه چي د قاضي فیصلې سره حق متعین شو. فَكَانَ مُبَادَلَةً نو دا مبادله شوه. بِخِلَافِ الصُّلْحِ ابْتِدَاءً په خلاف د ابتداءً صلح کولو. لِأَنَّ تَرَاضِيَهُمَا عَلَى بَعْضِ الْمَقَادِيرِ بِمَنْزِلَةِ الْقَضَاءِ فِي حَقِّ التَّعْيِينِ خکه چي ددوي په یو مقدار باندې رضامند کیدل په مرتبه د قضاء دی. د تعین په حق کي، فَلَا تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَى مَا تَعَيَّنَ. نو کوم ئې چي متعین کړي دي. هغې باندې به زیاتوالې جائز نه وي.

**تشریح:** که قاضي د شرعي دیت په مقدارونو کي د یو مقدار (مثلاً د سلو اوښانو) حکم ورکړو. او د مقتول اولیاؤ په بل مقدار (مثلاً په دوې (دوه) سوه غواګانو) باندې زیاتوالي سره صلح اوکړله. نو جائز ده. خکه چي قاضي د کوم شرعي مقدار حکم ورکړې وو. هم هغه حق متعین شو. نو په بل مقدار باندې صلح کول مبادله ده. ددې په خلاف که د ابتداء نه په دې مقدار باندې صلح واقع شي. نو جائز نه ده. خکه چي د متعین کاوه په اړه کي د دواړو په یو مقدار باندې رضامند کیدل په مرتبه د قاضي د حکم معتبر دی. نو کوم څه چي شریعت متعین کړل. هغې باندې خپلي رضامندئ سره زیاتوالي جائز نه دي.

قَالَ (وَلَا يَجُوزُ عَنْ دَعْوَى حَدٍّ) او جائز نه ده صلح کول. د حد د دعوې نه. لِأَنَّهُ حَقُّ اللَّهِ تَعَالَى لَا حَقُّهُ، خکه چي دا د الله تعالی حق دې. دده حق نه دي. وَلَا يَجُوزُ الِاعْتِيَاضُ عَنْ حَقِّ غَيْرِهِ، او د غیر د حق عوض اخستل جائز نه دي.

**تشریح:** د حد دعوې نه صلح جائز نه ده. خکه چي دا د الله تعالی حق دې. د بنده حق نه دې. او د بل د حق بدله اخستل جائز نه دی. نو که یوکس زنا کار، غل، یا شراب خور او نیولې او حاکم له ئې د بیولو (بوتللو) اراده اوکړله. او ماخوذ (نیولی شوی) په څه مال باندې صلح اوکړله. چه هغه دې پرېږدی. نو دا صلح جائز نه ده. تردې چي نیولی شوی (ماخوذ) کوم مال ورکړې دې. هغه به واپس اخلي. دغه ډول که یوکس په بل چا باندې د تهمت دعوه اوکړله. او مدعی علیه په څه دراهمو باندې صلح اوکړله. چه هغه دې معاف کړي. نو صلح باطل ده.

وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ الِاعْتِيَاضُ په دې وجه عوض اخستل ناجائز دی. إِذَا ادَّعَتِ الْمَرْأَةُ نَسَبَ وَلَدِهَا کله چي ښځه دعوه اوکړي. د خپل بچي د نسب، لِأَنَّهُ حَقُّ الْوَلَدِ لَا حَقُّهَا، خکه چي نسب د بچي حق دې. د ښځې نه دې.

**تشریح:** او خکه چي د غیر د حق بدله اخستل جائز نه ده. مسئله داده. چه یوې ښځې سره یو بچی دې. د هغه په اړه کي هغې په میړه باندې دعوه اوکړله. چه زما دا بچی هم دده نه پیدا دې. سړي ددې انکار اوکړو. او ښځې اوونیل. چه ده ماته طلاق راکړې دې. او زه دده نه بائنه شوې یم. او د نکاح دعوه ئې نه ده کړې. میړه د طلاق په اړه کي ددې تصدیق اوکړو. اود بچي د نسب د اړخه ئې په څه مال باندې صلح اوکړله. نودا صلح باطل ده. خکه چي مذکوره نسب ددې ښځې حق نه دې. بلکه د بچي حق دې. «فلا يجوز للأم إسقاطه ولا إعتياض عنه.......» په ایضاح کي دا روایت امام ابویوسف رحمه الله اړخ ته منسوب دې. او وئیلي ئې دی. چه «النسب



حق الصبي فلا تملك الأم إسقاطه بعوض وغير عوض»

وَكَذَا لَا يَجُوزُ الصُّلْحُ عَمَّا أَشْرَعَهُ إِلَى طَرِيقِ الْعَامَّةِ دغه ډول صلح جائز نه ده. د هغې نه کوم چي د عامو خلګو په لاره باندې جوړ شوې وي. لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَامَّةِ خکه چي دا د عامو خلګو حق دې. فَلَا يَجُوزُ أَنْ يُصَالِحَ وَاحِدٌ عَلَى الِانْفِرَادِ عَنْهُ نو یو کس لپاره به جلا ددې نه صلح کول جائز نه وي. وَيَدْخُلُ فِي إِطْلَاقِ الْجَوَابِ حَدُّ الْقَذْفِ او د خواب په اطلاق کي د تهمت حد هم داخل دې. لِأَنَّ الْمُغَلَّبَ فِيهِ حَقُّ الشَّرْعِ خکه چي دې کي حق شرع غالب دې.

**تشریح:** دغه ډول کوم شئ (سپر یا پاخانه وغیره) یوکس په عامه لاره کي جوړ کړو. ددې نه صلح کول هم جائز نه ده. خکه چي عامه لاره خود عامو خلګو ده. نو هیڅ څوک یواځې کس ددې نه صلح نشي کولې. علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه په اطلاق د خواب کي حدقذف هم داخل دې. چه ددې نه هم صلح جائز نه ده. خکه چي دې کي د شریعت حق دې. اود امام شافعي رحمه الله په نیز اګرچه د غلام حق غالب دې. خو هغه غیرمالي حق دې. «ولا يجوز أخذ العوض عنه».

## په ښځه د سړي د نکاح دعوه اود ښځې په انکار کښې په مال د صلح حکم

قَالَ (وَإِذَا ادَّعَى رَجُلٌ عَلَى امْرَأَةٍ نِكَاحًا) کله چي دعوه اوکړله. یو سړي په یوه ښځه د نکاح. وَهِيَ تَجْحَدُ حالانکه هغه د نکاح انکار کوی. فَصَالَحَتْهُ عَلَى مَالٍ بَذَلَتْهُ حَتَّى يَتْرُكَ الدَّعْوَى بیا ښځې صلح اوکړله. په څه مال ورکولو. چه هغه دعوه پرېږدی. جَازَ نو صلح جائز ده. وَكَانَ فِي مَعْنَى الْخُلْعِ) اود خلع په معنی کي ده. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ خُلْعًا فِي جَانِبِهِ بِنَاءً عَلَى زَعْمِهِ خکه چي د سړي د ګمان مطابق دده د اړخه خلع جوړه شوه. وَفِي جَانِبِهَا بَدَلًا لِلْمَالِ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ. او د ښځې د اړخه جګړه ختمولو په غرض سره مال خرچ کاوه سره صحیح کول ممکن دی. قَالُوا: مشائخو وئیلي دي. وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى چي سړي لپاره د دیانت په طور مال اخستل حلال نه دی. إِذَا كَانَ مُبْطِلًا فِي دَعْوَاهُ. کله چي دې پخپله دعوه کي دروغجن وي.

**تشریح:** یو کس په غیر منکوحه ښځه باندې د نکاح دعوه اوکړله. او ښځه منکره ده. خو ښځې څه مال ورکړو. او صلح ئې اوکړله. نودا صحیح ده. اوس دا صلح به ددې سړي په حق کي د خلعې په معنی کي وي. «لأن أخذ المال عن ترك البضع خلع» او د ښځې په حق کي به د جګړې ختمول او د قسم فدیه وي. بیا مشائخو وئیلي دی. که سړي پخپله دعوه کي دروغجن وي. نو هغه لپاره د دیانت په طور دا مال اخستل حلال نه دې. بلکه د صاحب نهایه رحمه الله د قول مطابق واړه صورتونه په کومو کي چي مدعی دروغجن وي. هغې کي هم دا حکم دی.

قَالَ (وَإِذَا ادَّعَتِ امْرَأَةٌ عَلَى رَجُلٍ نِكَاحًا) وکه دعوه اوکړله ښځې په یو سړي باندې د نکاح. فَصَالَحَهَا عَلَى مَالٍ بَذَلَهُ لَهَا نو سړي په څه مال ور کاوه سره صلح اوکړله. جَازَ نو جائز ده.

**تشریح:** اوکه مدعی ښځه وي. او سړي څه ورکړي. او صلح اوکړي. نو دا جائز نه ده. خکه چي د سړي ورکړې شوې مال د دعوه پرېښودلو لپاره ده. اوس که ددې دعوې پرېښودل د ښځې د اړخه جدائي لپاره اوګرځولې شي. نو په جدائي کي سړي مال نه ورکوي. بلکه ښځه ورکوي. خکه چي په دې جدائي سره د سړي په فائده کي هیڅ نه راځي. بلکه د ښځې ذات ته ددې د میړه نه خلاصي ملاویږي. اوکه جدائي لپاره او نه ګرځولې شي. نو بیا ددې مال په بدله کي هیڅ شئ نشته. (جوهره)

تنبیه: پورته چي څه وئیلي شوي دي. چه مذکوره جدائي سره د سړي په فائده کي هیڅ نه راځي. په دې تعلیل باندې ددې وئیلو ګنجائش شته. چه سړي ته اصل مهر ملاویږي. په دې معنی که چرې دا جدائي نه وې. نو د میړه په ذمه به ددې مهر لازمیدلو. (کله چي ښځې نکاح ثابت کړې وه) نودا کیداې شي. چه ښځه صلح بدل خکه ورکوي. چه جدائي کومه چي د خلع په معنی کي ده. ددې په ضمن کي میړه لپاره هغه مهر سلامت پاتې

شي ؟

خواب: ددي خواب دا ورکړې شوې دې، چه د ميره بدل نه ورکول په دې بناء دی، چه دا جدائی د ښځې د اړخه ده، لکه څنګه چې د تاج الشريعة تقرير نه هم دا ښکاره کيږي. ﴿حيث قال: يعني أن هذا الصلح إن جعل فرقة فلا عوض في الفرقة من جانبها على الزوج كالمرأة إذا مكنت ابن زوجها لا يجب عليه شيء﴾ يعنی که دا صلح فرقت اوګرځولې شي، نو کوم فرقت چې د ښځې د اړخه وی، هغې کې ميره باندې هيڅ عوض نه لازميږی، لکه که ښځه د ميره خوی ته په خان باند قابو ورکړی، نو ميره به هيڅ واجب نه دی.

؟ خو په دې خواب باندې دا اعتراض کيږي، چه د ښځې د اړخه د واقع کيدونکې جدايۍ د ميره د عوض ور کاوه نه مانع کيدل هغه وخت دی، کله چې د فرقت په سبب پيدا کاوه کې ښځه مستقله وی، لکه څنګه چې د تمکين ( د ميره خوی له په خان باندې د قدرت) په صورت کې دی، خوکه ښځه د فرقت په سبب پيدا کاوه کې پخپله د ميره رائې او د هغه په رضامندئ سره وی، لکه څنګه چې په،، ما نحن فيه،، ( زير بحث مسئله کې دی، نو داسې جدائی د عوض ور کاوه نه مانع نه وی، که ميره ښځې ته اوونيل. ﴿طلقي نفسك﴾ او ښځې هم په دې مجلس کې پخپله طلاق واخستلو، نو ددې مهر لازميږی. ( نتائج)

قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. هٰكَذَا ذُكِرَ فِي بَعْضِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ، چې د مختصر القدوری په بعضو نسخو کې هم دغه ډول ذکر دی. وَفِي بَعْضِهَا قَالَ: او په بعضو کې وئيلی شوی دی. لَمْ يَجُزْ. چې جائز نه ده. وَجْهُ الْأَوَّلِ د رومبی وجه داده. أَنْ يُجْعَلَ زِيَادَةً فِي مَهْرِهَا. چې دا د ښځې په مهر کې زياتوالې اوګرځولې شي. وَجْهُ الثَّانِي او د دوهم وجه داده. أَنَّهُ بَذَلَ لَهَا الْمَالَ لِتَتْرُكَ الدَّعْوَىٰ چې سړی ښځې ته د دعوه پريښولو په غرض مال ورکړې دې. فَإِنْ جُعِلَ تَرْكُ الدَّعْوَىٰ مِنْهَا فُرْقَةً اوس که د ښځې د اړخه دعوه پريښول جدائی اوګرځولې شي. فَالزَّوْجُ لَا يُعْطِي الْعِوَضَ فِي الْفُرْقَةِ، نو ميره په جدايۍ کې عوض نه ورکوی. وَإِنْ لَمْ يُجْعَلْ او که جدائی اونه ګرځولې شي. فَالْحَالُ عَلَىٰ مَا كَانَ عَلَيْهِ قَبْلَ الدَّعْوَىٰ نو حال به هم هغه وی، کوم چې د دعوه نه وړاندې وو. فَلَا شَيْءَ يُقَابِلُهُ الْعِوَضُ نو هيڅ شی پاتې نشو، چه ددې په مقابله کې عوض وی. فَلَمْ يَصِحَّ. نو صلح به صحيح نه وی.

تشريح: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی، چه د قدوری په بعضو نسخوکې ،،جاز،، دې او په بعضو کې ،،لم يجز،، دی. د صلح ناجائز کيدلو وجه خو پورته ذکر شوې ده. اود جواز وجه داده، چه سړی کوم مال ورکړې دې هغه د ښځې په مهر کې زياتوالې اوګرځولې شي. ګويا ده مهر زيات کړو. په اصل مهر باندې ئې خلع اوکړله نو اصل مهر ساقط شو او زياتوالې پخپل حال پاتې شو. د شيخ انزاری رحمه الله بيان دې، چه ما د سن هـ ليکلې شوې نسخه کې عدم جواز هم ليدلې دی.

قَالَ (وَإِنِ ادَّعَىٰ عَلَىٰ رَجُلٍ که په يوکس باندې دعوه اوکړله. أَنَّهُ عَبْدُهُ چې هغه دده غلام دې. فَصَالَحَهُ عَلَىٰ مَالٍ أَعْطَاهُ هغه څه مال ورکړو. جَازَ) و صلح ئې اوکړله، نو جائز ده. وَكَانَ فِي حَقِّ الْمُدَّعِي بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ عَلَىٰ مَالٍ) اودا د مدعی په حق کې د مال په بدله کې د آزادولو په حکم کې دی. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ عَلَىٰ هٰذَا الْوَجْهِ فِي حَقِّهِ لِزَعْمِهِ خکه چې د مدعی د ګمان مطابق دده په حق کې صلح په دې طريقه صحيح جوړول ممکن ده. وَلِهٰذَا يَصِحُّ عَلَىٰ حَيَوَانٍ فِي الذِّمَّةِ إِلَىٰ أَجَلٍ په دې وجه يوې مودې پورې خپله ذمه باندې اخستې شوی حيوان باندې صلح کول صحيح ده. وَفِي حَقِّ الْمُدَّعَىٰ عَلَيْهِ يَكُونُ لِدَفْعِ الْخُصُومَةِ، اود مدعی عليه په حق کې جګړه ختمولو لپاره ده. لِأَنَّهُ يَزْعُمُ أَنَّهُ حُرٌّ خکه دده ګمان دې، چه زه اصلي آزاد يم. فَجَازَ نو جائز ده. إِلَّا أَنَّهُ لَا وَلَاءَ لَهُ لِإِنْكَارِ الْعَبْدِ خو مدعی لپاره به ولاء نه وی، د غلام د انکار په وجه. إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْبَيِّنَةَ خو دا چې هغه ګواهان قائم کړی. فَتُقْبَلَ وَيَثْبُتَ الْوَلَاءُ نو هغه به قبول وی، او ولايت به ثابت وی.

تشريح: يوسړی په يو مجهول الحال سړی باندې دعوه اوکړله، چه دا زما غلام دې، او هغه څه مال ورکړو، او



صلح ئې اوکړله، نو صلح صحيح ده. اوس به دا د مدعی په حق کې د مال په بدله کې آزادی ګرځولې شي، خکه چې د مدعی د ګمان موافق دده په حق کې په دې طريقه صلح صحيح جوړول ممکن دی. ګويا دا مال مبادله نه ده. هم دا وجه ده، چه په داسې حيوان باندې صلح صحيح ده، چه د هغې وصف بيان کړی. او يوې مودې پورې ئې پخپله ذمه اخستې وی. که مبادله وې، نو صلح به نه صحيح کيدله. اود مدعی عليه په حق کې دا صلح د جګړې ختمولو په معنی کې وی. خکه دده ګمان دادې، چه زه اصلي آزاد يم. بيا به صلح جائز وی. خو مدعی ته به ولايت نه ملاويږی. البته که هغه ګواهان قائم کړی، نو ولايت به ملاويږی.

**د عبد ماذون په قصداً قتلولو سره د صلح حکم**

قَالَ (وَإِذَا قَتَلَ الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ رَجُلًا عَمْدًا) که عبد ماذون يوکس په قصد سره قتل کړو. لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يُصَالِحَ عَنْ نَفْسِهِ، نو جائز نه دی دده لپاره چې صلح اوکړی، پخپل ذات سره. وَإِنْ قَتَلَ عَبْدٌ لَهُ رَجُلًا عَمْدًا او که قتل اوکړو د عبد ماذون غلام يوکس په قصد سره. فَصَالَحَهُ او ماذون دده د اړخه صلح اوکړله. جَازَ) نو جائز ده. وَوَجْهُ الْفَرْقِ وجه د توپير داده. أَنَّ رَقَبَتَهُ لَيْسَتْ مِنْ تِجَارَتِهِ چې رقبه ماذون تجارت خنې نه دې. وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِيهِ بَيْعًا په دې وجه هغه په دې کې د بيع د تصرف مالك نه دې. فَكَذَا اسْتِخْلَاصًا بِمَالِ الْمَوْلَىٰ نو هم دغه ډول به دې د آقا د مال په عوض دخلاصولو هم مالك نه وی. وَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ، نودې د رقبه په حق کې د اجنبی پشان دې. أَمَّا عَبْدُهُ پاتې شو دده غلام، فَمِنْ تِجَارَتِهِ نو هغه دده دتجارت خنې دې. وَتَصَرُّفُهُ فِيهِ نَافِذٌ بَيْعًا او په ده کې د ماذون د بيع تصرف نافذ دې. فَكَذَا اسْتِخْلَاصًا، نو په خلاصولوکې به هم نافذ وی.

تشريح: که عبد ماذون په قصد سره يو سړې قتل کړو، نو دده د خپل خان بچ کاوه لپاره صلح کول جائز نه ده. خکه چې آقا ده ته د تجارت اجازت ورکړې دې او مذکوره صلح د تجارت د باب خنې نه ده، نو هغه پخپل ذات کې تصرف نشی کولې. ( خوکه صلح ئې اوکړله، نوقصاص به ساقطيږی. اود بدل صلح مطالبه به دده د آزادئ نه روسته کيږی ) البته که د عبد ماذون کوم يو غلام څوك په قصد سره قتل کړی. او عبد ماذون دده د اړخه صلح اوکړی نو جائز ده. خکه چې ددې غلام خلاصول، دده داخستلو پشان دی. نو لکه څنګه چې عبد ماذون له د غلام اخستل جائز دی. دغه ډول صلح کول، او دده خان بچ کول به هم جائز وی.

وَهٰذَا لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ كَالزَّائِلِ عَنْ مِلْكِهِ اودا خکه دی، چه عبد مستحق دده د ملکيت نه زائل کيدونکی پشان دې. وَهٰذَا يَشْتَرِيهِ (او مال د صلح ورکول او دده خلاصول) ګويا دده اخستل دی. فَيَمْلِكُهُ نو ده ته به اختيار وی.

تشريح: د توپير د امله تحقيق دادې، چه قاتل غلام هرکله د قصاص د ولی په استحقاق کې لاړلو. نو ګويا دده د ملکيت نه زائل شو. او مال د صلح ورکول او خلاصول ګويا دده اخستل دی. نو عبد ماذون ته به دده داخستلو اختيار وی. په خلاف د خپل ذات، هرکله چې دا د مولا د ملکيت نه زيات وی، نو غلام دده د اخستلو مالك نه وی، نو هم دغه ډول به د صلح هم مالك نه وی.

قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ ثَوْبًا يَهُودِيًّا قِيمَتُهُ دُونَ الْمِائَةِ يوکس غصب کړله، يهودی کپړه چې ددې قيمت د سلو نه کم دې. فَاسْتَهْلَكَهُ و هغه ضائع کړله. فَصَالَحَهُ مِنْهَا عَلَىٰ مِائَةِ دِرْهَمٍ بيا ئې ددې د قيمت نه په سل درهمه صلح اوکړله. جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ.(1)) نو جائز ده. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: صاحبين رحمهما الله فرمائی. يَبْطُلُ الْفَضْلُ عَلَىٰ قِيمَتِهِ بِمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ) چې ددې په قيمت باندې دومره زياتوالې باطل

(1) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (٢٤١\٤) وكنز الدقائق (ص،٢٩٤) وتنوير (٥٩١\٤) والبحر الرائق (٢٥٨\٧) نقلاً عن القول الراجح (٢٠٥\٢)

دي.چه د هغې تاوان خلګ نه اوچتوی.لِأَنَّ الْوَاجِبَ هِيَ الْقِيمَةُ ځکه چې واجب خو قیمت دي.وَهِيَ مُقَدَّرَةٌ او هغه يو متعين مقدار دي.فَالزِّيَادَةُ عَلَيْهَا تَكُونُ رِبًا نو په دې به زیاتوالې سود وی.بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَى عَرْضٍ په خلاف ددې کله ئې چې په اسبابو باندې صلح اوکړله.لِأَنَّ الزِّيَادَةَ لَا تَظْهَرُ عِنْدَ اخْتِلَافِ الْجِنْسِ،ځکه چې د جنس د اختلاف په وخت کې زیاتوالې نه ښکاره کیږی.وَبِخِلَافِ مَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ او په خلاف د هغې دکوم تاوان چې خلګ اوچتوی.لِأَنَّهُ يَدْخُلُ تَحْتَ تَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ ځکه چې دا د اندازه کونکو په اندازه کې داخل ده.فَلَا تَظْهَرُ الزِّيَادَةُ. نو زیاتوالې به نه ښکاره کیږی.

**تشريح:** د شیخ اکمل د قول مطابق یهود د اهل کتابو يو قوم دي.چه دوی ارخ ته یوه خاص کپړه منصوب ده «يقال ثوب يهودي» خو علامه کاکی او شیخ انزاری رحمهما الله فرمائی.چه ظاهرا لفظ د یهود دلته کې د يو خاني نوم دي.چه دې ارخ ته معلوم قیمت والا کپړه منسوب ده. بهرحال مسئله داده.چه یوسړی يو یهودی تهان چې ددې قیمت د سلو روپو نه کم دي.غصب کړله.او ضائع ئې کړله.او اوسه پورې لا قاضی ددې د قیمت کاوه حکم نه وو ورکړې.چه غاصب ددې مالك ته سل روپئ ورکړې.او صلح ئې اوکړله. نود امام صاحب رحمه الله په نیز دا صلح جائز ده.صاحبین، امام شافعی ، او امام احمد رحمهم الله فرمائی.چه د کوم قیمت په اندازه کې عام خلګ تاوان نه اوچتوی.د هغه قیمت نه په زیات باندې صلح کول جائز نه دی.ځکه چې دمالك حق صرف ددې په قیمت کې دي.چه دا يو متعين مقدار دي.نو ددې نه زیات اخستل به سود وی.په خلاف ددې کله چې غاصب په متعينو اسبابو باندې صلح کړې وی.چه دا بالاتفاق جائز ده.که د اسبابو قیمت کم وی.اوکه زیات وی.ځکه چې د جنس د اختلاف په وخت زیاتوالې نه ښکاره کیږی.او په خلاف ددې کله ئې چې په دومره قیمت باندې صلح کړې وی.کوم چې د اندازه کونکو په اندازه کې داخلیږی.نودا هم جائز ده. «ولأنه لم يعد ذالك فضلا فلم يكن ربا»

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.أَنَّ حَقَّهُ فِي الْهَالِكِ بَاقٍ چې په ضائع شوی کې دده حق پاته دي.حَتَّى لَوْ كَانَ عَبْدًا تردې که چرې د کپړې په ځائې غلام وې.وَتَرَكَ أَخْذَ الْقِيمَةِ او آقا قیمت اخستل پریخودی وو.يَكُونُ الْكَفَنُ عَلَيْهِ نو کفن به په آقا باندې واجب وو.

**تشريح:** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه دمالك حق په ضائع شوې کپړه کې هم اوس هم پاته دې.تردې که اووایه.چه په داسې صورت کې د آقا حق داسې مثل سره متعلق کیږی.کوم چې د صورت او معنی هرلحاظ سره مثل وی.ځکه چې د ظلم تاوان په مثل سره کیږی.او قیمت ارخ ته چې دده کوم حق منتقل کیږی.هغه د قاضی د فیصلې په ذریعه سره کیږی.او هرکله چې دې د فیصلې نه وړاندې په زیات قیمت باندې رضامند شو.نودا به د خپل حق عوض اخستل وی.سود به نه وی.البته که قاضی د قیمت حکم ورکړې وی.نو ددې نه په زیات باندې صلح کول به سود وی.ځکه چې اوس دده حق قیمت ارخ ته منتقل شوې دې.

أَوْ حَقُّهُ فِي مِثْلِهِ صُورَةً وَمَعْنًى،یا دده حق صوری او معنوی په مثل کې دې.لِأَنَّ ضَمَانَ الْعُدْوَانِ بِالْمِثْلِ،ځکه چې د ظلم تاوان په مثل سره کیږی.وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْقِيمَةِ بِالْقَضَاءِ او د قیمت ارخ د قاضی په قضاء سره منتقل کیږی.فَقَبْلَهُ إِذَا تَرَاضَيَا عَلَى الْأَكْثَرِ نو هرکله چې هغه د فیصلې نه وړاندې اکثر باندې راضی شو.كَانَ اعْتِيَاضًا نودا د خپل حق عوض اخستل اوګرځیدل.فَلَا يَكُونُ رِبًا،نودا به سود نه وی.بِخِلَافِ الصُّلْحِ بَعْدَ الْقَضَاءِ په خلاف د فیصلې نه روسته د صلحې.لِأَنَّ الْحَقَّ قَدْ انْتَقَلَ إِلَى الْقِيمَةِ. ځکه چې اوس حق قیمت ارخ ته منتقل شو.

**تشريح:** په دې باندې صاحب د عنایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه دا په تسامح باندې مبنی ده.ځکه چې د مسئلې وضع په قیمتی څیزونو کې ده.او په دلیل کې مثلی شئ ذکر دې.ځکه چې صورة او معنی دمثل وجوب په



مثلیاتو کې کیږی.او قیمت ارخ ته رجوع هغه وخت کیږی.کله چې مثلی منقطع وی ؟

«خواب» دادې.چه په «او حقه فی مثله» کې د حق نه مراد اخذ نه دې.لکه څنګه چې موصوف ګنړلی دی.(ځکه چې دا په قیمتونوکې متصور نه دې).بلکه حق نه مراد د ملك د تعلق حق دې.په دې معنی چې دغاصب په ذمه مالك لپاره صورة او معنی د هلاك شوی په مثل يو حق واجب دې.چه دا په قیمت والا څیزونو کې هم متصور دې.(اګرچه حق اخذ صرف په مثلیاتو کې متصور دې.ځکه چې د قیمتونو والا څیزونو په ذمه واجبدل ناممکن دی.لکه نکاح او دیت وغیره کې د حیوان او ثوب وجوب.

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ کله چې يو غلام په دوې (دوه) کسانو کې مشترك وی.أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا او په دوی کې يو کس آزاد کړی.وَهُوَ مُوسِرٌ په داسې حال کې چې هغه توانګر دی.فَصَالَحَهُ الْآخَرُ عَلَى أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ قِيمَتِهِ او دوهم دده د نصف قیمت نه په زیات باندې صلح اوکړی.فَالْفَضْلُ بَاطِلٌ) نودا زیاتوالې باطل دې.وَهَذَا بِالِاتِّفَاقِ،وَأَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِمَا بَيَّنَّا. اودا بالاتفاق دی.د صاحبینو رحمهما الله په نیز په هغه وجه کومه چې موږ بیان کړې ده.وَالْفَرْقُ لِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنیفه رحمه الله لپاره وجه د توپیر داده.أَنَّ الْقِيمَةَ فِي الْعِتْقِ مَنْصُوصٌ عَلَيْهَا چې د ازادئ په صورت کې قیمت منصوص دې.وَتَقْدِيرُ الشَّرْعِ لَا يَكُونُ دُونَ تَقْدِيرِ الْقَاضِي اود شرع مقررول د قاضی د مقررولو نه کم نشی کیدلې.فَلَا تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِ،نو په دې به زیاتوالې جائز نه وی.بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ لِأَنَّهَا غَيْرُ مَنْصُوصٍ عَلَيْهَا په خلاف د تیرې شوی مسئلې،چه په هغې کې قیمت منصوص نه دې.(وَإِنْ صَالَحَهُ عَلَى عُرُوضٍ و که په اسبابو ئې صلح اوکړله.جَازَ) نو جائز نه ده.لِمَا بَيَّنَّا ځکه موږ بیان کړل.أَنَّهُ لَا يَظْهَرُ الْفَضْلُ،وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ چې زیاتوالې نشی ښکاره کیدلې.

**تشريح:** يو غلام کې دوې (دوه) نفر شريك وو.په دوی کې توانګر شريك خپله برخه آزاده کړله.او دوهم شريك سره ئې د غلام د نصف قیمت نه په زیات باندې صلح اوکړله.نو بالاتفاق به صلح ناجائز او زیاتوالې باطل وی.

د صاحبینو رحمهما الله په نیز وجه د بطلان هم هغه ده.کومه چې پورته ذکر شوه.(یعنی د زیاتوالی ربوا کیدل).د امام صاحب رحمه الله په نیز وجه د بطلان داده.چه د آزادئ په صورت کې قیمت شرعاً اندازه کړې شوې او منصوص علیه دې.ځکه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. «من إعتق شقصا من عبد مشترك بينه و بين شريكه قوم عليه نصيب شريكه» نو قیمت باندې به زیادت جائز نه وی.په خلاف د غصب،چه په دې کې قیمت منصوص علیه نه دې.په دې وجه په زبردستئ سره د اخستلو په صورت کې به په زیاتی قیمت باندې صلح جائز وی.

## باب التبرع بالصلح والتوكيل به

ژباړه: (دا) باب صلح سره د احسان، اود وکیل کولو (په بیان کې) دې.

**تشريح:** د سړی تصرف پخپله د خپل ذات لپاره چونکه اصل دې.په دې وجه ئې ددې بیان د غیر لپاره د تصرف په بیان باندې مقدم کړې دې.اود تبرع بالصلح نه مراد هم دادې.ځکه چې سړې کوم کار غیر لپاره کوی.هغه په دې کې متبرع وی.خو صاحب د نتائج وائی.چه دلته کې تبرع بالصلح نه مراد صرف غیر لپاره تصرف کول نه دی.ګنې ددې نه روسته الفاظ «والتوکیل» به مستدرك شی.بلکه دلته کې د تبرع نه مراد د بل د اړخه د هغه د حکم نه بغیر صلح کول دی.اود «و التوكيل به» نه مراد د هغه په حکم سره صلح کول دی. (كذا في النهاية،والغاية،والعناية)

### د صلح د وکیل د حق بیان

(وَمَنْ وَكَّلَ رَجُلًا بِالصُّلْحِ عَنْهُ و چاچه يو کس د صلح کاوه وکیل کړو.د خپل طرفه.فَصَالَحَ و هغه صلح اوکړله.لَمْ يَلْزَمْ الْوَكِيلَ مَا صَالَحَ عَنْهُ نو لازم به نه وی.وکیل باندې هغه مال په کوم ئې چې صلح کړې ده.إِلَّا

أَنْ يَضْمَنَهُ خودا چې وکيل د هغې ضمانت اوکړي.

**تشريح:** يوسړى بل څوك د خپل اړخه د صلح وکيل کړو. هغه صلح اوکړله. نو په کوم مال چې صلح اوشوه. هغه به دوکيل په ذمه نه وى. بلکه دموکل په ذمه به وى. خوداچه وکيل ددې ضمانت اوکړي. علامه مرغيناني رحمه الله فرماني، چه ددې مسئلې ( يعنې وکيل باندې د عدم لزوم) تاويل دادې، چه يوسړي د قتل عمد د اړخه يا په ده چې څومره قدرې دين دې. د هغې په څه برخه باندې د صلح کاوه لپاره دوهم کس وکيل جوړ کړو. نو بدل صلح به موکل باندې لازم وى. په وکيل به لازم نه وى. ځکه چې دا صلح قاتل نه قصاص ختمول دى. اود مدعى عليه نه د بعض دين اسقاط دې. نو وکيل سفير محض پاتې شو. عاقد نشو. نو حقوق به موکل اړخ ته راجع کيږي. لکه د نکاح وکيل د مهر وغيره نه ضامن کيږي. البته که وکيل د صلح کاوه په وخت د بدل صلح ضامن شى. نو بدل صلح به هم په ده باندې لازم وى. خود توکيل په وجه نه، بلکه دده د ضامن کيدلو په وجه، د مذکوره تاويل اړتيا ځکه راپيښ شوې دې، که د مال نه په مال سره صلح وى. نودا په مرتبه د بيع کې وى. نو حقوق به وکيل اړخ ته راجع کيږي. اود مال مطالبه هم دده نه کيږي. موکل نه نه کيږي.

(وَالْمَالُ لَازِمٌ لِلْمُوَكِّلِ) او مال به دموکل په ذمه وى. وَتَأْوِيلُ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ ددې مسئلې تاويل دادې. إِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ چې دا هغه وخت دى. کله چې صلح د قتل عمد نه وى. أَوْكَانَ الصُّلْحُ عَنْ بَعْضِ مَا يَدَّعِيهِ مِنَ الدَّيْنِ يا دهغه دين په څه برخه باندې وى. د کوم چې ده دعوه کړې ده. لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ مَحْضٌ ځکه چې دا اسقاط محض دې. فَكَانَ الْوَكِيلُ فِيهِ سَفِيرًا وَمُعَبِّرًا نو وکيل په دې کې سفير او معبر شو. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو په ده به ضمان نه وى. كَالْوَكِيلِ بِالنِّكَاحِ لکه د نکاح وکيل، إِلَّا أَنْ يَضْمَنَهُ خودا چې هغه به ضامن وى. لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ هُوَ مُؤَاخَذٌ بِعَقْدِ الضَّمَانِ ځکه چې دغه وخت به دې د عقد ضمان په وجه ماخوذ وى. لَا بِعَقْدِ الصُّلْحِ، د عقد صلح په وجه به نه وى. أَمَّا إِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ مَالٍ بِمَالٍ اوکه صلح د مال نه په مال باندې وى. فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْعِ نودا په مرتبه د بيع ده. فَتَرْجِعُ الْحُقُوقُ إِلَى الْوَكِيلِ نود وکيل حق اړخ ته به راجع کيږي. فَيَكُونُ الْمُطَالِبُ بِالْمَالِ هُوَ الْوَكِيلُ دُونَ الْمُوَكِّلِ اود مال مطالبه به وکيل نه کيږي. موکل څخه به نه کيږي.

**تشريح:** په نهايه، درايه، عنايه، بنايه، غايه شرح اقطع ټولو کې د ،،للموکل،، لام په معنى د ،،على،، اخستې شوې دي. «أي المال لازم على الموكل» لکه څنګه چې په آيت ﴿وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا﴾ کې لام په معنى د ،،على،، دې، ،،أي فعليها،، صاحب دنتائج فرمانى، چه ددې هيڅ وجه نشته. ځکه چې للموکل لازم سره متعلق دى. او کلمه د لزوم متعدى بنفسه هم وى. او باء سره هم، ،،يقال لزمه و لزم به،، خو على سره نه متعدى کيږي. نو کلمه د ،،لا،، به پخپل حال باندې ساتلې شى. او ددې د عمل تقويت به منلې شى. ځکه چې بنفسه متعدى کيدونکى افعالو د اسم فاعل په معمول باندې د لام کلمې دخول د تقويت لپاره عمل کوى. کوم چې په کلام دعربو کې شائع او معمول به دې، په خلاف د آيت مذکوره، چې په دې کې لام کلمه مقدر سره متعلق ده. نو څه داسې کلمه به مقدر منلې کيږي. چه ددې لپاره ددې صله مناسب وى.

### د فضولي د صلح کولو حکم او ددې بعض صورتونه

قَالَ (وَإِنْ صَالَحَ رَجُلٌ عَنْهُ بِغَيْرِ أَمْرِهِ) که يوکس دده د اړخه دده د حکم نه بغير صلح اوکړله. فَهُوَ عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ: نودا په څلور قسمه ده. إِنْ صَالَحَ بِمَالٍ که صلح ئې اوکړله د مال په عوض، وَضَمِنَهُ او پخپله ضامن شو. تَمَّ الصُّلْحُ نو صلح پوره شوه. لِأَنَّ الْحَاصِلَ لِلْمُدَّعَى عَلَيْهِ لَيْسَ إِلَّا الْبَرَاءَةَ ځکه چې مدعى عليه لپاره هيڅ حاصل نشو سوا د براءت نه. وَفِي حَقِّهَا هُوَ وَالْأَجْنَبِيُّ سَوَاءٌ اود براءت په حق کې اجنبى او مدعى عليه برابر دى. فَصَلَحَ أَصِيلًا فِيهِ إِذَا ضَمِنَهُ نو اجنبى په دوى کې اصيل کيداې شى. کله چې دده ضامن شى. كَالْفُضُولِيِّ بِالْخُلْعِ إِذَا ضَمِنَ الْبَدَلَ لکه د خلع فضولى چې کله د بدل خلع ضامن شى. وَيَكُونُ مُتَبَرِّعًا عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ او هغه به احسان کونکې



وى. په مدعى عليه باندې، كَمَا لَوْ تَبَرَّعَ بِقَضَاءِ الدَّيْنِ لکه مثلاً که هغه د پور پريښولو احسان اوکړي.

**تشريح:** يو فضولى سړى د بل د اړخه د هغه د حکم نه بغير صلح اوکړله. نو ددې څلور صورتونه دى. ① فضولى دمال په بدله کې صلح اوکړله. اود بدل صلح پخپله ضامن شو. په دې صورت کې صلح پوره شوه ځکه چې مدعى عليه ته کوم شى حاصل دې. هغه براءت دې. اود براءت په حق کې مدعى عليه او اجنبى دواړه برابر دى. نو اجنبى سړې اصيل جوړيدلې شى. کله چې هغه ددې ضامن شى. لکه مثلاً د ښځې د اړخه په خلع اخستلو کې يو فضولى که د خلع د مال ضمانت واخستلو. نو جائز دې. اودا ددې اجنبى مصالح د اړخه د مدعى عليه په حق کې تبرع او احسان وى. لکه مثلاً که هغه د مدعى عليه قرضه د احسان په طور اداکړي. نو جائز ده. خو که مذکوره صلح د مدعى عليه په حکم سره وى. نو دې به د هغه په حق کې متبرع نه وى. بلکه د ضمانت باوجود به مال واپس اخلى.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بِأَمْرِهِ په خلاف ددې کله چې صلح دده په حکم سره وى. وَلَا يَكُونُ لِهٰذَا الْمُصَالِحِ شَيْءٌ مِنَ الْمُدَّعَى بيا به اجنبى مصالح لپاره د مدعى به دين نه هيڅ نه وى. وَإِنَّمَا ذٰلِكَ لِلَّذِي فِي يَدِهِ بلکه هغه به هم د هغه کس لپاره وى. دچا په قبضه کې چې دې. لِأَنَّ تَصْحِيحَهُ بِطَرِيقِ الْإِسْقَاطِ ځکه چې ددې صلح صحيح کيدل د اسقاط په طريقه دى. وَلَا فَرْقَ فِي هٰذَا بَيْنَ او په دې کې هيڅ توپير نشته. مَا إِذَا كَانَ مُقِرًّا أَوْ مُنْكِرًا چې مدعى عليه مقر وى. اوکه منکر وى.

**تشريح:** ② بيا دې اجنبى مصالح مدعى سره د کوم شى په عوض مال باندې صلح کړې ده. د هغې څخه به دې مصالح ته هيڅ نه ملاويږي. بلکه هغه به د هغه کس لپاره وى. چه دچا په قبضه کې دى. ځکه چې دا صلح صحيح ګرځول، د اسقاط په طور وى. يعنى مدعى خپل حق ساقط، او مدعى عليه برى کړو. نودا مبادله نه ده. بيا به مصالح مذکور ته هيڅ نه ملاويږي. نود مدعى عليه مقر يا منکر کيدلو سره هيڅ توپير نشته.

(وَكَذٰلِكَ إِنْ قَالَ صَالَحْتُكَ عَلَى أَلْفِي هٰذِهِ دغه ډول که فضولى اووئيل. چه ما پخپلو دې زر ( درهمو) أَوْ عَلَى عَبْدِي هٰذَا يا په دې غلام باندې تا سره صلح اوکړله. صَحَّ الصُّلْحُ نو صلح به صحيح وى. وَلَزِمَهُ تَسْلِيمُهَا) او په ده به سپارل لازم وى. لِأَنَّهُ لَمَّا أَضَافَهُ إِلَى مَالِ نَفْسِهِ ځکه هرکله چې ده صلح خپل ذاتى مال اړخ ته منسوب کړله. فَقَدِ الْتَزَمَ تَسْلِيمَهُ نو ددې د سپارلو ئې التزام اوکړو. فَصَحَّ الصُّلْحُ نو صلح به صحيح وى. (وَكَذٰلِكَ لَوْ قَالَ دغه ډول که ده اووئيل. عَلَى أَلْفٍ چې ما په زر( درهمو) باندې صلح اوکړله. وَسَلَّمَهَا) او زر( درهم) ئې ده ته اوسپارل. لِأَنَّ التَّسْلِيمَ إِلَيْهِ يُوجِبُ سَلَامَةَ الْعِوَضِ لَهُ ځکه چې ددې سپارل، هغه لپاره د عوض د سلامتيا موجب دى. فَيَتِمُّ الْعَقْدُ نود صلح معامله به پوره کيږي. لِحُصُولِ مَقْصُودِهِ دده د مقصد حاصليدلو په وجه.

**تشريح:** ③ د بدل صلح نسبت ئې خپل مال اړخ ته اوکړو. مثلاً داسې ئې اووئيل. چه ما تا سره په دې خپلو زر درهمو يا پخپل دې غلام باندې صلح اوکړله. په دې صورت کې به هم صلح صحيح وى. او په فضولى به دا زر درهم يا دا غلام سپارل لازم وى. ځکه چې هرکله هغه د صلح نسبت خپل ذاتى مال اړخ ته اوکړو. نو ددې د سپارلو التزام ئې اوکړو.

④ خپل ذاتى مال اړخ ته ئې خو نسبت اونکړو. خو بدل صلح ئې او سپارلو. په دې صورت کې به هم صلح صحيح وى. ځکه چې د مدعى مقصود دا وو. چه ده ته عوض اورسيږي. او هغه ده ته اورسيدلو.

### د فضولي د صلح پنځم صورت او ددې حکم

(وَلَوْ قَالَ صَالَحْتُكَ عَلَى أَلْفٍ وکه وې وئيل. چه ما په زر( درهمو) باندې صلح اوکړله. فَالْعَقْدُ مَوْقُوفٌ، نو عقد به موقوف وى. فَإِنْ أَجَازَهُ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ که مدعى عليه اجازت ورکړو. جَازَ نو جائز به وى. وَلَزِمَهُ الْأَلْفُ، و په ده به زر(درهم) لازم وى. وَإِنْ لَمْ يُجِزْهُ وکه اجازت ئې ورنکړو. بَطَلَ) نو باطل به وى. لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْعَقْدِ إِنَّمَا هُوَ

الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ څخه چې عقد کې اصل مدعی علیه دې. لِأَنَّ دَفْعَ الْخُصُومَةِ حَاصِلٌ لَهُ، څکه چې دفع د خصومت هم ده ته حاصل دې. إِلَّا أَنَّ الْفُضُولِيَّ يَصِيرُ أَصِيلًا بِوَاسِطَةِ إِضَافَةِ الضَّمَانِ إِلَىٰ نَفْسِهِ، خو فضولي ضمان خپل خان ارخ ته منسوب کاوه سره اصیل جوړېږي. فَإِذَا لَمْ يُضِفْهُ او هرکله چې ده خپل خان ارخ ته نسبت اونکړو. بَقِيَ عَاقِدًا مِنْ جِهَةِ الْمَطْلُوبِ نو دې د مطلوب د اړخه عاقد پاتې شو. فَيَتَوَقَّفُ عَلَىٰ إِجَازَتِهِ. نود مطلوب په اجازت به موقوف وی.

**تشریح:** ④ نه د بدل صلح ضامن شو. نه ئې خپل ذاتی مال اړخ ته نسبت اوکړو. نه ئې مدعی ته اوسپارلو. بلکه مطلق ساتلو سره ئې داسې اووئیل. چه ما په زر درهمو باندې صلح اوکړله. نو په دې صورت کې به صلح موقوف وي. که مدعی علیه دا جائز اوساتله. نوجائز به وی. ګنی جائز به نه وی. وجه داده. چه عقد کې اصل مدعی علیه دې. مطلب دادې. چه د جګړې ختمولو فائده هم ده ته حاصلیږی. خو خپل ذات اړخ ته نسبت کاوه سره فضولي هم اصیل جوړېږي. او هرکله چې په موجوده صورت کې ده خپل اړخ ته نسبت اونکړو. نو هغه اصیل نشو. بلکه مطلوب یعنی د مدعی علیه د اړخه عقد کونکې شو. نو صلح به دهغه په اجازت باندې موقوف وی. بیا دا د بعض مشائخو په اختیار باندې دی. بعضو وئیلی دی. چه په قول مذکور باندې هم د ،، صالحنی علی الفی،، په مرتبه کې دې. چه مصالح باندې به نافذ وی. توقف خو صرف په دې قول کې دی ،، صالح فلاناً،،

قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ عَصَمَهُ اللّٰهُ: علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. وَوَجْهٌ آخَرُ چې یو بل صورت دادې. وَهُوَ أَنْ يَقُولَ چې فضولي اووائی. صَالَحْتُكَ عَلَىٰ هَٰذِهِ الْأَلْفِ أَوْ عَلَىٰ هَٰذَا الْعَبْدِ چې ما په دې زرو ( درهمو) باندې یا په دې غلام باندې صلح کړې ده. وَلَمْ يَنْسُبْهُ إِلَىٰ نَفْسِهِ اودا ئې خپل خان اړخ ته منسوب نکړله. لِأَنَّهُ لَمَّا عَيَّنَهُ لِلتَّسْلِيمِ څکه چې هرکله ده دا د سپارلو لپاره متعین کړله. صَارَ شَارِطًا سَلَامَتَهُ لَهُ نو مدعی ته د سپارلو شرط والا شو. فَيَتِمُّ بِقَبُولِهِ. نو دده په قبول سره به صلح پوره کیږی.

**تشریح:** ⑤ علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه دلته د ذکر شوی څلورو صورتونو نه لاوه یو پنځم صورت هم دې. او هغه داچه فضولي خپل مال اړخ ته خو نسبت اونکړو. خو په اشاره سره ئې متعین کړله. او داسې ئې اووئیل. چه ما تا سره په دې زر درهمو یا په دې غلام باندې صلح اوکړله. په دې صورت کې به هم صلح صحیح وی. څکه چې هرکله ده د زر درهم یا غلام سپارلو لپاره متعین کړې دې. نو ګویا ده دا شرط اوکړو. چه هغه به دا مال مدعی ته ورسپاری. نود فضولي په قول سره صلح پوره کیږی.

وَلَوِ اسْتَحَقَّ الْعَبْدَ اوکه غلام مستحق اوختلو. أَوْ وَجَدَ بِهِ عَيْبًا یا ئې په ده کې څه عیب اوموندلو. فَرَدَّهُ او واپس ئې کړو. فَلَا سَبِيلَ لَهُ عَلَى الْمُصَالِحِ نو دده لپاره به مصالح باندې هیڅ لاره نه وی. لِأَنَّهُ الْتَزَمَ الْإِيفَاءَ مِنْ مَحَلٍّ بِعَيْنِهِ څکه چې ده یو متعین محل سره د ادا کاوه التزام کړې وو. وَلَمْ يَلْتَزِمْ شَيْئًا سِوَاهُ، ددې نه د علاوه التزام ئې نه ووکړې. فَإِنْ سَلِمَ الْمَحَلُّ لَهُ نو که دا معین محل ده ته اوسپارلې شو. تَمَّ الصُّلْحُ، نو صلح پوره شوه. وَإِنْ لَمْ يُسَلَّمْ لَهُ اوکه اونه سپارلې شو. لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ. نو مصالح باندې رجوع نشي کولې

**تشریح:** بیا هغه غلام په کوم ئې چې صلح کړې وه. یو کس په استحقاق کې واخستلو. یا مدعی په ده کې څه عیب اوموندلو. اوواپس ئې کړو. ( یا ئې دا آزاد کړو. یا ئې مکاتب یا مدبر اوموندلو). نو ده ته به په صلح کونکې باندې ( د رجوع) هیڅ لاره نه وی. څکه چې ده یو متعین محل نه د ادا کاوه التزام کړې وو. ( او هغه غلام دې. کوم چې د بدل صلح لپاره متعین دی). ددې نه علاوه ده د بل څه التزام نه دې کړې. نوکه دا معین محل ده ته اوسپارلې شو. نو صلح پوره شوه. او که اونه سپارلې شو. نو هغه د مصالح نه هیڅ نشی اخستې. ( خو خپلې دعوه اړخ ته به رجوع کوی ).

بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَىٰ دَرَاهِمَ مُسَمَّاةٍ په خلاف ددې کله چې په متعین دراهمو باندې صلح اوکړی. وَضَمِنَهَا په خپله [illegible] ضامن شی. وَدَفَعَهَا او مدعی ته ئې ورکړی. ثُمَّ اسْتُحِقَّتْ بیا د امستحق راوخی. أَوْ وَجَدَهَا زُيُوفًا یا دا کوټه



اوموموی. حَيْثُ يَرْجِعُ عَلَيْهِ چې په دې صورت کې به مدعی مصالح باندې رجوع کوی. لِأَنَّهُ جَعَلَ نَفْسَهُ أَصِيلًا فِي حَقِّ الضَّمَانِ څکه چې ده د ضمان په حق کې خپل خان اصیل جوړ کړې دې. وَلِهَٰذَا يُجْبَرُ عَلَى التَّسْلِيمِ په دې وجه دې په سپارلو باندې مجبور کولې شی. فَإِذَا لَمْ يُسَلِّمْ لَهُ مَا سَلَّمَهُ نو هرکله چې دا مال مدعی لپاره سلامت پاتې نشو. يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِبَدَلِهِ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو دده څخه به بدل صلح واپس اخلی.

**تشریح:** ددې په خلاف که ده په څه متعین دراهمو باندې صلح اوکړله. بیا پخپله ضامن شو. او هغه ئې مدعی ته ورکړلې. ددې نه روسته هغه د مدعی نه په استحقاق کې واخستلې شوې. یا مدعی دا کوټه بیا موندلې. او واپس ئې کړې. نومدعی ته به اختیار وی. چه هغه مصالح نه نور درهم واخلی. څکه چې مصالح د ضمانت په حق کې خپل خان اصیل جوړ کړې دې. په دې وجه په ده باندې جبر کیدلې شی. چه د صلح مال اوسپاری. او هرکله چې هغه کوم چې مصالح او سپارلو. مدعی لپاره سلامت پاتې نشو. نو مدعی به دده نه عوض د صلح واپس اخلی.

## بَابُ الصُّلْحِ فِي الدَّيْنِ

ژباړه: ( دا) باب په قرضه کې د صلح کولو ( په بیان کې ) دې.

**تشریح:** جونکه خصوص همیشه د عموم نه روسته وی. د دې امله ئې دعامو دعوو د اړخه د صلح حکم بیانولو نه روسته د خاص دعوې یعنی د دعوې د دین نه د صلح حکم بیانوی. ( غایه)

### په صلح کښې د عقد مداینت په وجه د واقع شوی څیز حکم

( وَكُلُّ شَيْءٍ وَقَعَ عَلَيْهِ الصُّلْحُ هر هغه شئ چې په هغې صلح واقع شی. وَهُوَ مُسْتَحَقٌّ بِعَقْدِ الْمُدَايَنَةِ او هغه د عقد مداینت په وجه واجب وی. لَمْ يُحْمَلْ عَلَى الْمُعَاوَضَةِ، نو هغه په معاوضه باندې نشی محمول کولې. وَإِنَّمَا يُحْمَلُ عَلَىٰ أَنَّهُ اسْتَوْفَىٰ بَعْضَ حَقِّهِ بلکه په دې به محمول کولې شی. چه مدعی خپل څه حق واخستلو. وَأَسْقَطَ بَاقِيَهُ او پاته ئې ساقط کړو.

**تشریح:** دا ددې باب قاعده کلیه ده. چه په کوم شئ باندې صلح واقع شی. او هغه د عقد مداینت ( مثلاً په پور د خرڅولو، یا د پور ورکولو) په سبب سره واجب وی. نودا صلح به په هغې باندې محمول کولې شی. چه مدعی خپل څه حق وصول کړو. او څه ئې ساقط کړلو. په معاوضه به نشی محمول کولې. چه د عوضینو په کمی زیاتی سره سود لازم نشی. په دې قاعده باندې صاحب د نتائج دا اعتراض کړې دې. چه ددې قاعدې کلیت د ﴿لم يحمل على المعاوضة﴾ په لحاظ سره خو منلې شوې ده. خود ﴿وإنما يحمل على أنه﴾ په لحاظ سره نه منلې کیږی. څکه چې په کوم شئ باندې صلح واقع شی. او هغه د عقد مداینت په سبب سره واجب وی. که هغه په قدر، وصف کې د مدعی د حق مثل وی. لکه مثلاً د یوکس په ذمه زر کره درهم وی. او هغه په زر کره درهمو باندې صلح اوکړی. نودا به د عین حق په استیفاء باندې محمول کولې شی. چه په دې باندې د هیڅ شئ اسقاط نشته. په بدائع او تحفه وغیره ډیرو معتبرو کتابونو کې ددې تصریح موجود ده. په دې وجه وقایه کې داسې وئیلی دی. ﴿وصلح على بعض من جنس ماله عليه أخذ لبعض حقه و حط لباقيه لا معاوضة﴾ خو ددې ځواب ډیر آسان دې. او هغه داچه دلته کې ګفتګو په معتاد طریقه باندې ده. او عادت دادې. چه صلح په عامه توګه (عام طور) باندې مدعا نه په اصل باندې کیږی. ددې په مثل باندې نه کیږی. څکه چې مثل حق باندې صلح کاوه کې هیڅ فائده نشته.

**تنبیه:** ⑥ صاحب د نهایه رحمه الله فرمائی. چه په ذکر شوې قاعده کې د مستحق بعقد المداینه نه روسته د ﴿ولا يمكن حمل على بيع الصرف﴾ قید اضافه کول هم پکار ده. څکه که صلح په بیع صرف باندې محمول کړې شی. نو معاوضه به وی. اوکه هم ددې جنس خنې وی. کوم چې د عقد مداینه په سبب سره واجب دې. نو کتلې به شی. که هغه مؤجل وی. نو صلح به باطل وی. ګنی باطل به نه وی. خو صاحب دنتائج فرمائی. چه ده ته هیڅ

اړتیا نشته. څکه چې ذکر شوې قول ﴿وهو مستحق بعقد المداينة﴾ هغه خارجوي.د کوم چې په بیع صرف باندې محصول کول ممکن وي.څکه چې د اهل شرع په نيز چې دکوم په بيع صرف باندې محصول کول ممکن دی.هغه مستحق بعقد مداينه څني نه دي.اوکوم چې مستحق بعقد مداينه دي.هغه د هغې څني نه دي.کوم چې په بيع صرف باندې محصول کول ممکن وي.

## د خپل حق نه د کم په عوض باندې د صلح کولو حکم

كَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ لکه چې د یوکس په بل باندې زر درهم دی. فَصَالَحَهُ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ، هغه په پنځه سوه باندې صلح اوکړله. وَكَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ جِيَادٌ يا مثلاً د يو کس په بل باندې زر درهمه کره دي. فَصَالَحَهُ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ زُيُوفٍ هغه په پنځه سوه کوټه درهمو باندې صلح اوکړله. جَازَ نو جائز ده. وَكَأَنَّهُ أَبْرَأَهُ عَنْ بَعْضِ حَقِّهِ) گويا هغه د خپل بعض حق نه بری کړو. وَهَذَا لِأَنَّ تَصَرُّفَ الْعَاقِلِ يَتَحَرَّى تَصْحِيحَهُ مَا أَمْكَنَ، اوداخکه چې د عاقل تصرف چې ترکومه پورې ممکن وي.د صحیح کاوه کوښښ کولې شي. وَلَا وَجْهَ لِتَصْحِيحِهِ مُعَاوَضَةً اود معاوضه په طور باندې ددې د صحیح کاوه هيڅ وجه نشته. لِإِفْضَائِهِ إِلَى الرِّبَا څکه چې دا ربواء (سود) اړخ ته مفضي ده. فَجُعِلَ إِسْقَاطًا لِلْبَعْضِ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى نو په ړومبۍ مسئله کې د بعض (حق) اسقاط، وَلِلْبَعْضِ وَالصِّفَةِ فِي الثَّانِيَةِ او په دوهم صورت کې د بعض اسقاط مع صفت ګرځولې شوی دې. (وَلَوْ صَالَحَ عَلَى أَلْفٍ مُؤَجَّلَةٍ كه صلح ئې اوکړله.په زر (درهمو) متعين مودې پورې. جَازَ نو جائز ده. وَكَأَنَّهُ أَجَّلَ نَفْسَ الْحَقِّ) گويا هغه نفس حق مؤخر كړو. لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ جَعْلُهُ مُعَاوَضَةً څکه چې ددې معاوضه کول ممکن نه ده. لِأَنَّ بَيْعَ الدَّرَاهِمِ بِمِثْلِهَا نَسِيئَةً لَا يَجُوزُ څکه چې دراهم، هم ددې د مثل په عوض پور خرڅول جائز نه دی. فَحَمَلْنَاهُ عَلَى التَّأْخِيرِ نو موږ په تاخير باندې محمول کړو.

**تشریح:** د مذکوره قاعدې په لحاظ سره که يوکس د زر درهمو د اړخه په پنځه سوه درهمو باندې صلح اوکړله.يا د زر کره درهمو د اړخه ئې پنځه سوه کوټه درهمو باندې صلح اوکړله.يا زر درهم غيرميعادي وو .او په زر ميعادي باندې ئې صلح اوکړله.نو صلح جائز ده.وجه داده.چه د عاقل بالغ تصرف چې څومره پورې ممکن وي.صحيح کول ضروري دی.او دلته د معاوضې په طور باندې ددې تصحيح ممکن نه ده.څکه چې سود لازميږي.نودا به اسقاط ګرځولې شي.ګويا ده په ړومبي صورت کې بعض حق يعنى پنځه سوه درهم ساقط کړل.او په دوهم صورت کې بعض حق سره د وصف ساقط شو.او په دريم صورت کې فوري طور واجبيدل ساقط شو.يعنى نفس حق ئې مؤخر کړو.ګنی دراهم ددې د مثل په عوض پور خرڅول لازميږي.چه دا جائز نه دی.

(وَلَوْ صَالَحَهُ عَلَى دَنَانِيرَ إِلَى شَهْرٍ كه صلح ئې اوکړله په د ينارونو باندې، د يو مياشت په مهلت سره، لَمْ يَجُزْ) نو جائز نه ده. لِأَنَّ الدَّنَانِيرَ غَيْرُ مُسْتَحَقَّةٍ بِعَقْدِ الْمُدَايَنَةِ څکه چې دنانير واجب نه وو.د عقد مداينه په سبب سره، فَلَا يُمْكِنُ چور عَلَى التَّأْخِيرِ نو دا په تاخير باندې محمول کول ممکن نه دی. وَلَا وَجْهَ لَهُ سِوَى الْمُعَاوَضَةِ، او سوا د معاوضه کيدلو، هيڅ وجه نشته. وَبَيْعُ الدَّرَاهِمِ بِالدَّنَانِيرِ نَسِيئَةً لَا يَجُوزُ حالانکه دراهم د دنانيرو په عوض پور خرڅول جائز نه دی. فَلَمْ يَصِحَّ الصُّلْحُ نودا صلح به صحيح نه وي.

**تشریح:** که د غير ميعادي زر درهمو د اړخه په زر دينار ميعادي باندې صلح اوکړله.نو داجائز نه ده.څکه چې د عقد مداينه په سبب سره دنانير واجب نه دی.نو جلتى د حق په تاخير باندې نشي محمول کيدلې.معاوضه باندې به محمول کولې شي.او هرکله چې معاوضه وي.نودا صلح به بيع صرف وي.او بيع صرف کې دراهم د دنانيرو په عوض کې پور خرڅول جائز نه دی.

(وَلَوْ كَانَتْ لَهُ أَلْفٌ مُؤَجَّلَةٌ كه د يوکس زر (درهم) ميعادي وي. فَصَالَحَهُ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ حَالَّةٍ و هغه فوري (نغد) په



پنځه سوه باندې صلح اوکړي. لَمْ يَجُزْ) نو جائز نه ده. لِأَنَّ الْمُعَجَّلَ خَيْرٌ مِنَ الْمُؤَجَّلِ څکه چې نقد د پور نه بهتر دي. وَهُوَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ بِالْعَقْدِ اود نغدو مستحق نه دې.د عقد په وجه، فَيَكُونُ بِإِزَاءِ مَا حَطَّهُ عَنْهُ، نودا به ددې په مقابله کې وي.کوم چې ده کم کړې دي. وَذَلِكَ اعْتِيَاضٌ عَنِ الْأَجَلِ وَهُوَ حَرَامٌ اودا د ميعاد عوض اخستل شو.کوم چې حرام دی.

**تشریح:** دغه ډول که د زر ميعادي درهمو د اړخه په پنځه سوه نغدو درهمو باندې صلح اوکړله.نودا هم صحيح نه ده.څکه چې اجل يعنى ميعاد د مديون حق دي.نو نصف معجل د اجل عوض شو.اود اجل عوض اخستل حرام دی.څکه چې د جودة (کره والی) پشان اجل هم يو وصف دې.نو لکه څنګه چې د جودة عوض اخستل جائز نه دی.دغه ډول د اجل عوض اخستل به هم جائز نه وي.

(وَإِنْ كَانَ لَهُ أَلْفٌ سُودٌ كه د يوکس زر تور درهم وي. فَصَالَحَهُ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ بِيضٍ) وهغه په پنځه سوه سپينو درهمو باندې صلح اوکړي. لَمْ يَجُزْ نو جائز نه ده. لِأَنَّ الْبِيضَ غَيْرُ مُسْتَحَقَّةٍ بِعَقْدِ الْمُدَايَنَةِ څکه چې سپين درهم واجب نه دی.په عقد مداينه سره. وَهِيَ زَائِدَةٌ وَصْفًا اودا وصف زائد دي. فَيَكُونُ مُعَاوَضَةَ الْأَلْفِ بِخَمْسِمِائَةٍ وَزِيَادَةِ وَصْفٍ نو د زر (درهمو) معاوضه به پنځه سوه سره کيږي. سره د وصف زائد، وَهُوَ رِبًا، اودا سود دې. بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَنِ الْأَلْفِ الْبِيضِ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ سُودٍ حَيْثُ يَجُوزُ په خلاف ددې کله چې زر سپينو درهمو نه په پنځه سوه تورو باندې صلح اوکړي. لِأَنَّهُ إِسْقَاطٌ كُلُّهُ قَدْرًا وَوَصْفًا، څکه چې دا د قدر او وصف لارې نه بعض حق ساقطوي. وَبِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَلَى قَدْرِ الدَّيْنِ اوپه خلاف ددې کله چې په مقدار د دين باندې صلح اوکړي. وَهُوَ أَجْوَدُ څو مقدار دصلح زيات کره دي. لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةُ الْمِثْلِ بِالْمِثْلِ، څکه چې دا د برابر معاوضه ده.د برابر نه، وَلَا مُعْتَبَرَ بِالصِّفَةِ اود وصف اعتبار نه کيږي. إِلَّا أَنَّهُ يُشْتَرَطُ الْقَبْضُ فِي الْمَجْلِسِ، څو په مجلس کې قبضه کول شرط دی.

**تشریح:** که د زر تورو درهمو د اړخه په زر سپينو درهمو باندې صلح اوکړله.نودا هم صحيح نه ده.څکه چې د زر تورو درهمو معاوضه پنځه سوه درهم شو. سره د زياتوالی د وصف نه.او په معاوضه د نقدينو کې د وصف اعتبار نه کيږي.نو سود لازم شو.او سود حرام دې.ددې په خلاف که د سپينو درهمو د اړخه په پنځه سوه تورو درهمو باندې صلح اوکړله.نو جائز ده.څکه چې ده د قدر او وصف په لحاظ خپل بعض حق ساقط کړو.دغه ډول که د پور په مقدار باندې صلح اوکړله.اود صلح مقدار د پور په نسبت زيات کره دې.نو دا صلح جائز ده.څکه چې دا د برابر معاوضه برابر سره ده.او وصف د جودة معتبر نه دې.څو په مجلس کې قبضه کول شرط دی.

وَلَوْ كَانَ عَلَيْهِ أَلْفُ دِرْهَمٍ وَمِائَةُ دِينَارٍ كه په يوکس باندې زر درهم او سل ديناره وي. فَصَالَحَهُ عَلَى مِائَةِ دِرْهَمٍ حَالَّةٍ أَوْ إِلَى شَهْرٍ او هغه سل فوري يا د يو مياشت په ميعاد باندې صلح اوکړي. صَحَّ الصُّلْحُ نو صلح صحيح ده. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ أَنْ يُجْعَلَ إِسْقَاطًا لِلدَّنَانِيرِ كُلِّهَا څکه چې دده کل دينار او د سلو نه سوا پاته دراهم ساقطول، وَالدَّرَاهِمِ إِلَّا مِائَةً وَتَأْجِيلًا لِلْبَاقِي اود سلو ميعاد ورکول ګرځيدلې شي. فَلَا يُجْعَلُ مُعَاوَضَةً تَصْحِيحًا لِلْعَقْدِ نود عقد صحيح کاوه په غرض سره به دا معاوضه نشي ګرځولې کيدې. أَوْ لِأَنَّ مَعْنَى الْإِسْقَاطِ فِيهِ أَلْزَمُ او څکه چې په دې کې معنى د اسقاط زياته متعلق ده.

**تشریح:** که په يوکس باندې زر درهم او سل ديناره وي.او هغه په سل درهمو نغدو باندې يا د يو مياشت په ميعاد باندې صلح اوکړي.نودا صحيح ده.څکه چې دا د اسقاط په معنى کې کول ممکن دی.په دې طريقه چې ده دينار واړه ساقط کړل.او په دراهمو کې ئې سوا د سلو درهمو پاته واړه ساقط کړل.بيا ئې د سلو درهمو لپاره ميعاد ورکړو.نو دا صلح به د صحيح جوړولو لپاره د معاوضې په معنى کې نشي اخستلې.بلکه د اسقاط په معنى کې به ګرځولې شي.او په دې وجه هم چې د صلح معنى ده،،کمول،، اودا

معنی په ذکر شوي طريقه کي زياته موندلې شي.

### په مقرر وخت د نيم په ورکولو د پاتې معاف کولو بيان اوددې بعض صورتونه

قَالَ (وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ) د يوکس په بل باندې زر درهم دي. فَقَالَ هغه اوونيل أَدِّ إِلَيَّ غَدًا مِنْهَا خَمْسَمِائَةٍ چي ما ته صباله ورځ په هغې کي پنځه سوه راکړه. عَلَى أَنَّكَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ په دې شرط چي ته د پاتې نه بری يې. فَفَعَلَ نو هغه هم داسي اوکړل. فَهُوَ بَرِيءٌ نو هغه به بری وی. فَإِنْ لَمْ يَدْفَعْ إِلَيْهِ الْخَمْسَمِائَةِ غَدًا اوکه هغه په صباله ورځ پنځه سوه ورنکړل. عَادَ عَلَيْهِ الْأَلْفُ نو په ده به زر درهم واپس راځي. وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ.(¹) هم دا د طرفينو رحمهما الله قول دي.

تشريح: د زيد په عمرو باندې زر درهم وو. هغه عمرو ته اوونيل چه ته ما ته ټولې پنځه سوه راکړه، په دې شرط، چي د پاتې پنځه سوه څخه به ته بری يې. عمرو هم داسي اوکړل. نو هغه به د پنځه سوه نه بری وی. اوکه هغه صباله ورځ ادا نکړل. نود طرفينو رحمهما الله په نيز به نه بری کيږي. د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به په دې صورت کي هم بری کيږي. ځکه چي ابراء مطلق ده. نو که هغه ادا کړي. اوکه نکړي. په هر صورت کي به بری کيږي. آيا نه ګورې چي ده د پنځه سوه درهمو اداکول د ابراء عوض مقرر کړي دي. او ونيلي ئې دی. چه په دې عوض باندې ته د زياتوالی نه بری يې. حالانکه اداکول د عوض کيدلو لائق نه دی. ځکه چي ادا کول خو پخپله مقروض باندې واجب وو. نو دده دا ونيل، او نه ونيل برابر شو. او مطلق ابراء پاتې شوه. نود زر درهمو قرضه به نه واپس کيږي. لکه مثلاً که دې ابراء مقدم کړي. او داسې اوواني. چه «ابرئك على خمس مائة من الف على ان تؤدي غداً خمس مائة من ألف» چي په دې صورت کي به دې بالاتفاق د کل نه بری کيږي. که ادا ئې کړي. او که ادا ئې نکړي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. (لَا يَعُودُ عَلَيْهِ) چي نه به واپس کيږي. لِأَنَّهُ إِبْرَاءٌ مُطْلَقٌ ځکه چي دا ابراء مطلق ده. أَلَا تَرَى آيا نه ګورې، أَنَّهُ جَعَلَ أَدَاءَ الْخَمْسِمِائَةِ عِوَضًا حَيْثُ ذَكَرَهُ بِكَلِمَةِ عَلَى چي ده د پنځه سوه اداکول عوض مقرر کړي دي. په کلمه د ،،علی ،، سره. وَهِيَ لِلْمُعَاوَضَةِ، چي دا د معاوضه لپاره ده. وَالْأَدَاءُ لَا يَصْلُحُ عِوَضًا حالانکه اداکول عوض کيدلو لائق نه دي. لِكَوْنِهِ مُسْتَحَقًّا عَلَيْهِ مقروض باندې ددې د واجب کيدلو په وجه. فَجَرَى وُجُودُهُ مَجْرَى عَدَمِهِ نو ددې وجود د عدم په درجه کي شو. فَبَقِيَ الْإِبْرَاءُ مُطْلَقًا او مطلق ابراء پاتې شوه. فَلَا يَعُودُ نو زر (درهم) قرضه به نه واپس کيږي. كَمَا إِذَا بَدَأَ بِالْإِبْرَاءِ. لکه مثلاً که هغه وړاندې ابراء ذکر کړي.

تشريح: قوله: ذكره بكلمة على: په بكلمة، ،علی ،، کي ،، باء ،، د مقابلې لپاره ده. لکه څنګه چي په «بعت هذا بهذا» کي ده. نود عبارت معنی دا شوه. «حيث ذكر اداء الخمس مائة بمقابلة كلمة على التي للمعاوضة» بعض حضراتو باء د الصاق لپاره منلې ده. او دخول فی الاداء ئې مراد اخستې ده. او د عبارت توجيه ئې داسې کړې ده. «حيث ذكره بكلمة على اي في المعنى و إلا ففي اللفظ دخل كلمة على في الإبراء دون الأداء» خود ړومبی توجيه په صورت کي ددې تاويل هيڅ اړتيا نه پاتې کيږي. (نتائج)

وَلَهُمَا طرفينو رحمهما الله دليل دادی. أَنَّ هَذَا إِبْرَاءٌ مُقَيَّدٌ بِالشَّرْطِ چي دا ابراء شرط سره مقيد ده. فَيَفُوتُ بِفَوَاتِهِ نود شرط په فوت کيدو سره به ابراء هم فوت کيږي. لِأَنَّهُ بَدَأَ بِأَدَاءِ الْخَمْسِمِائَةِ فِي الْغَدِ ځکه چي ده صباله ورځ د پنځه سوه اداکول وړاندې ذکر کړي دی. وَأَنَّهُ يَصْلُحُ غَرَضًا حِذَارَ إِفْلَاسِهِ چي دا غرض صحيح کيداې شي. دده د غريب کيدلو د يرې نه. وَتَوَسُّلًا إِلَى تِجَارَةٍ أَرْبَحَ مِنْهُ، يا ددې نه د زيات ګټور تجارت وسيله خپلولو دپاره، وَكَلِمَةُ عَلَى إِنْ

---

¹) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (۱۸۵\۳) وملتقى (۴۳۵\۳) وبدائع الصنائع (۶۷\۱۴) وكنز (۲۹۶) نقلاً عن القول الراجح (۲۰۵\۲)



كَانَتْ لِلْمُعَاوَضَةِ او کلمه د ،، علی ،، اګرچه معاوضه لپاره ده. فَهِيَ مُحْتَمِلَةٌ لِلشَّرْطِ لِوُجُودِ مَعْنَى الْمُقَابَلَةِ فِيهِ البته شرط ته محتمل ده. د مقابلې معنی موندلو د امله نه. فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ الْحَمْلِ عَلَى الْمُعَاوَضَةِ تَصْحِيحًا لِتَصَرُّفِهِ نو هم په شرط به محمول کولې شي. معاوضه باندې د حمل د متعذر کيدلو په وخت، دده تصرف صحيح کاوه په غرض سره، أَوْ لِأَنَّهُ مُتَعَارَفٌ، يا ځکه چي هم دا متعارف دي.

تشريح: د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. چه دلته کي براءت مطلق نه دې بلکه د اداء شرط سره مقيد دې. نود شرط فوت کيدلو سره به ابراء هم واپس کيږي. ځکه چي ده صباله ورځ پنځه سوه ادا کاوه سره ابتداء کړې ده. او په دې کي دده غرض صحيح کيداې شي. چه ممکن ده. د مدعی عليه د غريبۍ يره وی. يا ددې نقصان نه د زيات ګټور تجارت وسيله لټون کوی. او کلمه د ،،علی ،، معاوضه لپاره ده. خو د مقابلې معنی په وجه د شرط احتمال هم دي. په دې معنی چي په شرط او جزاء کي هم د مقابلې معنی موندلې کيږي. نو هم په شرط به محمول کولې شي. ځکه د معاوضې په معنی کي په دې وجه ناممکن ده. چي د عاقل بالغ فعل صحيح نه پاتې کيږي. يا په دې وجه چي داسې مواقع عرفاً د شرط په معنی کي اخستې شي.

وَالْإِبْرَاءُ مِمَّا يَتَقَيَّدُ بِالشَّرْطِ او ابراء د هغه څيزونو څخې ده. کوم چي شرط سره مقيد کيداې شي.

تشريح: د سوال ځواب دي. سوال دادې. چه براءت په شرط باندې معلق کول، بالاتفاق باطل دی. لکه مثلاً غريم يا کفيل ته دا اوواني. «إذا أديت إلى خمس مائة فأنت بريء من الباقي» او تقييد بالشرط، تعليق دي؟
ځواب: حاصل د ځواب دادې. چه براءت په شرط سره مقيد کيداې شي. اګرچه په شرط سره نه معلق کيږي. لکه څنګه چي د حواله حال دې. چه د محيل براءت د سلامتيا شرط سره مقيد وی. تردې که محال عليه مفلس (غريب) شي. او مړ شي. نو دين د محيل په ذمه واپس کيږي.

وَإِنْ كَانَ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ كَمَا فِي الْحَوَالَةِ، اګرچه شرط سره نشي مقيد کيدی.

تشريح: په براءت مقيد، او معلق کي توپير دادې. چه، ،ابراء مقيد بشرط،، دې ته واني. چي براءت موجود دې خو مطلقاً نه دې، بلکه په دې شرط سره دې. او براءت معلق بشرط دادې. چه هرکله شرط او موندلې شي. نو براءت مطلق حاصليږي.

وَسَنُخَرِّجُ الْبُدَاءَةَ بِالْإِبْرَاءِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى اود ابراء مقدم کاوه تخريج به موږ انشاءالله روسته کوو.

تشريح: امام ابويوسف رحمه الله په (كما إذا بدأ بالإبراء) وئيلو سره چي کوم قياس کړې وو. د هغې د ځواب د تاخير عذر دې. يعنی موږ به د مقيس او مقيس عليه توپير روسته ذکر کوو. چه د مسئلې د دريم صورت لاندې راروان دې.

### په مقرر وخت د نيم په نه ورکولو، د نه معاف کولو يو صورت

قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. وَهَذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى وُجُوهٍ: چي دا مسئله په يو څو طريقو ده. أَحَدُهَا مَا ذَكَرْنَاهُ. يوه هم دغه کومه چي موږ ذکر کړله.

تشريح: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه په ذکر شوې مسئله کي د «و من له على آخر ألف درهم» پنځه صورتونه دی. ① ړومبې صورت هم هغه دې. کوم چي په کتاب کي ذکر شو. يعنی دده داسې ونيل. چه «أد الى غداً منها خمس مائة على أنك بريء».

وَالثَّانِي إِذَا قَالَ دوهم دا چي هغه اوونيل. صَالَحْتُكَ مِنَ الْأَلْفِ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ چي ما د زرو (درهمو) نه په پنځه سوه باندې صلح اوکړله. تَدْفَعُهَا إِلَيَّ غَدًا کوم چي ته ما ته صباله راکړې. وَأَنْتَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ عَلَى أَنَّكَ اود پاتې نه ته په دې اقرار سره بری يې. إِنْ لَمْ تَدْفَعْهَا إِلَيَّ غَدًا که صباله دې رانکړل، فَالْأَلْفُ عَلَيْكَ عَلَى حَالِهِ. نو زر به په تا باندې پخپل حال (زره په زره) پاتې وی. وَجَوَابُهُ ددې ځواب دادې. أَنَّ الْأَمْرَ عَلَى مَا قَالَ چي معامله دده د

ونیلو مطابق ده. لِأَنَّهُ أَتَى بِصَرِيحِ التَّقْيِيدِ فَيُعْمَلُ بِهِ. ځکه چې ده صراحتاً تقیید ذکر کړې دي. نو په دې به عمل کولې شي.

تشریح: ② دوهم صورت دادې چه پور دار ته ئې اوونیل چه ما تا سره د زر درهمو نه په پنځه سوه باندې په دې شرط سره صلح اوکړله چه ته صباله ورځ ما ته پنځه سوه راکړې. نو ته د پاته نه بری یې. په دې اقرار چې که صباله دې رانکړل نو زر به پخپل حال پاتې وی. ددې حکم دادې چه معامله به بالاجماع دده د ونیلو مطابق وی. ځکه چې ده صریح تقیید ذکر کړې دې. نو دده په ونیلو به عمل کولې شي.

وَالثَّالِثُ إِذَا قَالَ دریم دا چې ده اوونیل أَبْرَأْتُكَ مِنْ خَمْسِمِائَةٍ مِنَ الْأَلْفِ ما ته په زر (درهمو) کې د پنځه سوه نه په دې شرط باندې بری کړلې عَلَى أَنْ تُعْطِيَنِي الْخَمْسَمِائَةِ غَدًا چې ته صباله ما ته پنځه سوه راکړې. وَالْإِبْرَاءُ فِيهِ وَاقِعٌ په دې صورت کې براءت اوشو. أَعْطَى الْخَمْسَمِائَةِ أَوْلَمْ يُعْطِ که هغه پنځه سوه ورکړی. یا ورنکړی. لِأَنَّهُ أَطْلَقَ الْإِبْرَاءَ أَوَّلًا وَأَدَاءُ الْخَمْسِمِائَةِ ځکه چې ده په براء بالشرط کې شك په پیل کې مطلقاً اوساتلو. لَا يَصْلُحُ عِوَضًا مُطْلَقًا او د پنځه سوه اداکول مطلقاً دعوض کیدلو لائق نه دې. وَلَكِنَّهُ يَصْلُحُ شَرْطًا خو شرط کیداې شي. فَوَقَعَ الشَّكُّ فِي تَقْيِيدِهِ بِالشَّرْطِ نو په تقیید بالشرط کې شك شو. فَلَا يَتَقَيَّدُ بِهِ، نو براءت به مقید نه وی. بِخِلَافِ مَا إِذَا بَدَأَ بِأَدَاءِ خَمْسِمِائَةٍ په خلاف ددې کله چې ده د پنځه سوه اداکول مقدم کړل. لِأَنَّ الْإِبْرَاءَ حَصَلَ مَقْرُونًا بِهِ، ځکه چې براءت حاصل شوې دې. مقرون کیدلو سره، فَمِنْ حَيْثُ إِنَّهُ لَا يَصْلُحُ عِوَضًا يَقَعُ مُطْلَقًا، نو په دې حیثیت سره، چې هغه د عوض کیدلو لائق نه دې. مطلقاً به واقع کیږي. وَمِنْ حَيْثُ إِنَّهُ يَصْلُحُ شَرْطًا لَا يَقَعُ مُطْلَقًا په دې حیثیت سره چې دا شرط کیداې شي. مطلقاً به نه واقع کیږي. فَلَا يَثْبُتُ الْإِطْلَاقُ بِالشَّكِّ او نود شرط په وجه به اطلاق نه ثابتیږي. فَافْتَرَقَا. نو په دواړو کې توپیر اوشو.

تشریح: ③ دریم صورت دادې چه ده په زر درهمو کې د پنځو سوو نه په دې شرط باندې بری کړې. چه صباله ورځ پنځه سوه راکړې. ددې حکم دادې چه براءت اوشو. که هغه پنځه سوه ورکړی او که ورنکړی. ځکه چې هغه اولاً براءت مطلق ساتلې دې. نو مطلق براءت حاصل نشو بیا ده د پنځه سوه اداکول، د براءت عوض جوړ کړې دې. حالانکه اداکول ددې لائق نه دی چه هغه عوض مطلق وی. ځکه عوض خو هغه دې. کوم چې لا تراوسه حاصل نه وی. او دلته پنځه سوه اداکول حاصل دی. ځکه چې دا د بعض براءت نه بغیر هم د مقروض په ذمه واجب ده. البته اداکول د شرط کیدلو لائق ده. نو اوس داشك راپیدا شو. چه ده براءت شرط سره مقید کړې دې. او که نه دې. نو کوم مطلق براءت چې په پیل کې حاصل شو. هغه به په دې شك سره نه زائل کیږي. نو براءت به نشی مقید کولې. په خلاف د هغه صورت، کله چې ده د پنځه سوه اداکول مخکې بیان کړی وی. (لکه څنګه چې په رومبی صورت کې دی)، چه په دې کې به ابراء مقید وی. ځکه چې براءت اداء سره ملاؤ شوې ده. نو په دې لحاظ سره چې هغه د عوض کیدلو لائق نه ده. براءت مطلق واقع شو. په دې لحاظ سره چې دا د شرط کیدلو لائق ده. ابراء مطلق به نه وی. بهرحال د شك په وجه به اطلاق نه ثابتیږي. نو براءت بالابراء او براءت باداء الخمس مائة دواړو کې توپیر ښکاره شو. (دا هغه توپیر دې چې ددې وعده وړاندې شوې وه).

وَالرَّابِعُ إِذَا قَالَ څلورم داچه هغه اوونیل أَدِّ إِلَيَّ خَمْسَمِائَةٍ ته ما ته پنځه سوه راکړه. عَلَى أَنَّكَ بَرِيءٌ مِنَ الْفَضْلِ په دې شرط چې ته د پاته نه بری یې. وَلَمْ يُوَقِّتْ لِلْأَدَاءِ وَقْتًا. اود ادا کاوه ئې هیڅ وخت بیان نکړو. وَجَوَابُهُ ددې خواب دادې أَنَّهُ يَصِحُّ الْإِبْرَاءُ چې براءت صحیح دې. وَلَا يَعُودُ الدَّيْنُ او پور به نه واپس کیږي. لِأَنَّ هَذَا إِبْرَاءٌ مُطْلَقٌ ځکه چې دا ابراء مطلق ده. لِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يُوَقِّتْ لِلْأَدَاءِ وَقْتًا ځکه چې هرکله ده د ابراء هیڅ وخت بیان نکړو. لَا يَكُونُ الْأَدَاءُ غَرَضًا صَحِيحًا نو ادا هیڅ صحیح غرض نشو. لِأَنَّهُ وَاجِبٌ عَلَيْهِ فِي مُطْلَقِ الْأَزْمَانِ ځکه چې مطلق زمانه کې اداکول خو په ده باندې واجب دی. فَلَمْ يَتَقَيَّدْ نو براءت به مقید نه وی. بَلْ يُحْمَلُ عَلَى الْمُعَاوَضَةِ بلکه معاوضه باندې به محمول کولې شی. وَلَا يَصْلُحُ عِوَضًا، حالانکه براءت د عوض کیدلو قابل نه دې. بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تیر شوی لِأَنَّ



الْأَدَاءَ فِي الْغَدِ غَرَضٌ صَحِيحٌ. ځکه چې صباله ادا کول غرض صحیح دې.

تشریح: ④ څلورم صورت دادې چه ده د ادا کاوه وخت ذکر کاوه نه بغیر داسې اوونیل چه ته ما ته پنځه سوه درهم په دې شرط باندې اداکړه. چه ته د پاته نه بری یې. ددې حکم دادې چه براءت صحیح دې. او پور به نه واپس کیږي. وجه دادَه. چه دا براءت مطلق دې. ځکه چې هرکله ده د براءت هیڅ وخت بیان نکړو. نو ادا هیڅ صحیح غرض نشو. ځکه چې یو نه یو وخت اداکول، خو پخپله مقروض باندې واجب دی. نو د پنځه سوه اداکول د شرط په معنی کې نشی کیدلې. تردې چې دې سره تقیید حاصل شی. او معاوضه باندې په دې وجه نشی محمول کولې. چه دا د عوض کیدلو قابل نه دې. هرکله چې دواړه خبرې مشکل دی. نو براءت به لامحاله مطلق وی. په خلاف ددې کله چې د ادا څه وخت بیان کړی. چه په دې صورت کې براءت مقید کیدلې شی. ځکه چې صباله ورځ ادا کاوه کی غرض صحیح متعلق دې.

وَالْخَامِسُ إِذَا قَالَ پنځم دا چې ده اوونیل. إِنْ أَدَّيْتَ إِلَيَّ خَمْسَمِائَةٍ أَوْ قَالَ إِذَا أَدَّيْتَ که ته ما ته پنځه سوه راکړې. أَوْ مَتَى أَدَّيْتَ. یا هرکله چې ته اداکړې. فَالْجَوَابُ فِيهِ ددې خواب دادې. أَنَّهُ لَا يَصِحُّ الْإِبْرَاءُ چې براءت به صحیح نه وی. لِأَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالشَّرْطِ صَرِيحًا، ځکه چې ده صراحتاً شرط سره معلق کړې دې. وَتَعْلِيقُ الْبَرَاءَاتِ بِالشُّرُوطِ بَاطِلٌ حالانکه براءت شرط سره معلق کول باطل دی. لِمَا فِيهَا مِنْ مَعْنَى التَّمْلِيكِ ځکه چې براءت کې د ملکیت معنی ده. حَتَّى يَرْتَدَّ بِالرَّدِّ، تردې چې په رد کاوه سره رد کیږي. بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تیر شوی. لِأَنَّهُ مَا أَتَى بِصَرِيحِ الشَّرْطِ ځکه چې دې کې ئې صریح شرط نه دې راوړلې. فَحُمِلَ عَلَى التَّقْيِيدِ بِهِ. په دې وجه تقیید باندې محمول کړې شو. قَالَ (وَمَنْ قَالَ لِآخَرَ یو کس بل ته اوونیل لَا أُقِرُّ لَكَ بِمَالِكَ چې زه به ستا لپاره د مال اقرار نه کوم. حَتَّى تُؤَخِّرَهُ عَنِّي تردې چې ته ما ته مهلت راکړې. أَوْ تَحُطَّ عَنِّي یا څه کم کړې. فَفَعَلَ نو هغه هم داسې اوکړل. جَازَ عَلَيْهِ) نودا به په ده باندې جائز وی.

تشریح: ⑤ پنځم صورت دادې چه ده صریح شرط بیانولو سره اوونیل چه اګر، یا هرکله، یا هر چرته، ته ما ته پنځه سوه اداکړې. نو ته د پاته نه بری یې. ددې حکم دادې چه براءت صحیح نه دې. ځکه چې صریح شرط سره د براءت تعلیق باطل دې. او وجه دادَه. چه براءت اسقاط دې. تردې چې قبلولو باندې موقوف نه دې. او په دې کې دملکیت معنی هم ده. تردې چې په رد کاوه سره رد کیږي. اود ملکیت تعلیق بیع وغیره شرط سره جائز نه دې. اود اسقاط تعلیق په عتاق او طلاق وغیره شرط سره جائز دې. نو براءت کوم چې دواړو معانو باندې مشتمل دې. د هغې په اړه کې موږ اوونیل چه هرکله د شرط تصریح نه وی. او کله چې د شرط تصریح وی. نو صحیح نه ده.،، عملا بالشبهین،،

لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُكْرَهٍ، ځکه چې دې مجبور نکړې شو. وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ اود مسئلې مطلب دادې. إِذَا قَالَ ذَلِكَ سِرًّا چې ده دا خبره په پټه اوکړله. أَمَّا إِذَا قَالَ عَلَانِيَةً که په ښکاره ئې اوکړی. يُؤْخَذُ بِهِ نود مال مؤاخذه (او ګرفت) به کولې شی.

تشریح: مکروه نه کیدل ځکه دی. چه هغه د ګواه قائمولو په ذریعه دا لرې کولې شی. صرف دومره خبره ده. چه دلته یو ډول له اضطرار (د مجبورئ حالت) دې. خو اضطرار د تصرف د نفاذ نه مانع نه وی. لکه که یوسړې د ډیرې لوږې نه مجبوره شي. اود خوراك شئ په ګران قیمت باندې واخلي. یا خپل څه شئ د طعام په عوض کې خرڅ کړی. نو دده تصرف نافذ کیږي. اګرچه هغه دې اړخ ته مضطر (مجبوره) دې.

## فصل في الدين المشترك

ژباړه: (دا) فصل د مشترك پور (په بیان کې) دې.

**د شراکت په صورت کښې د اخستې قرضې په اداکولو کښې د صلح بیان**

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الدَّيْنُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ) كله چې قرضه د دوو (دوه) شريكانو وي. فَصَالَحَ أَحَدُهُمَا مِنْ نَصِيبِهِ عَلَى ثَوْبٍ او په دوی كې يوكس د خپلې برخې (حصې) د اړخه كپړه باندې صلح اوكړي. فَشَرِيكُهُ بِالْخِيَارِ، نو دده شريك ته اختيار دې. إِنْ شَاءَ اتَّبَعَ الَّذِي عَلَيْهِ الدَّيْنُ بِنِصْفِهِ، كه غواړي،هم ده پسې دې اولګی.په چا چې قرضه ده.د خپلې نيمې برخې (حصې) دپاره، وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ نِصْفَ الثَّوْبِ و كه غواړي.خپله نيمه كپړه دې واخلی.

تشريح: قرضه دواړو شريكانو په منځ كې مشترك ده.په دوی كې يو مشترك د خپلې برخې (حصې) د اړخه په يوه كپړې باندې صلح اوكړله.نو دوهم شريك ته به اختيار وي.كه غواړي نيمه كپړه دې واخلی.اوكه غواړي.اصل مديون نه دې خپله برخه طلب كړي.خو كه شريك مصالح دده لپاره د څلورمې برخې (حصې) دين ضامن شی.نو بيا به د دوهم شريك په كپړه كې حق پاته نه پاتې كيږي.

(إِلَّا أَنْ يَضْمَنَ لَهُ شَرِيكُهُ رُبُعَ الدَّيْنِ) البته كه ضامن وی دده لپاره دده شريكوال د څلورمې برخې (حصې) د قرض،

تشريح: احب دنهايه او شيخ اتقانی ونيلی دی.چه دا د ،،فشريكه بالخيار،، نه استثناء ده.صاحب د عنايه رحمه الله هم بخپل قول ﴿فإنه لا خيار لشريكه فی اتباع الغريم﴾ سره دې اړخ ته اشاره كړې ده.او هم دې ته صاحب د كفايه رحمه الله احسن ونيلی دی.مطلب دادې.چه غيرمصالح شريك ته مذكوره اختيار دې.خودا چې دده شريك د څلورمې برخې (حصې) د دين ضامن شی.چه په دې صورت كې به ده ته اختيار نه وی.خود كافی د تقرير اود صاحب د كفايه رحمه الله بنكاره صراحت دادې.چه دا د ﴿إن شاء أخذ نصف الثوب﴾ نه استثناء ده.ځكه چې هركله شريك دده لپاره د څلورمې برخې (حصې) د دين ضامن شو.نو اوس ده ته په نيمه كپړه كې د شركت ولايت پاتې نشو.اودا هم ممكن ده.چه ﴿إن شاء اتبع الذی عليه الدين بنصفه﴾ نه استثناء وی.ځكه چې هركله شريك هغه لپاره د نيم مقبوض ضامن شو.نو اوس ده ته د نيم دين واپس اخستلو ولايت پاتې نشو،،بل يرجع بربعه،،

وَأَصْلُ هَذَا او اصل په دې باب كې دادی.أَنَّ الدَّيْنَ الْمُشْتَرَكَ بَيْنَ اثْنَيْنِ چې كوم پور په دوو (دوه) كسانو كې مشترك وی.إِذَا قَبَضَ أَحَدُهُمَا شَيْئًا مِنْهُ او په دوی كې يوكس څه وصول كړی.فَلِصَاحِبِهِ أَنْ يُشَارِكَهُ فِي الْمَقْبُوضِ نو دوهم كس ته اختيار دې.چه هغه مقبوض كې دده شريك شی. لِأَنَّهُ ازْدَادَ بِالْقَبْضِ،ځكه چې ده وصولولو كې زياتوالی واخستلو. إِذْ مَالِيَّةُ الدَّيْنِ بِاعْتِبَارِ عَاقِبَةِ الْقَبْضِ،ځكه چې د پور ماليت آخر كار وصولولو اعتبار سره دی. وَهَذِهِ الزِّيَادَةُ رَاجِعَةٌ إِلَى أَصْلِ الْحَقِّ اودا زياتوالی اصل حق اړخ ته راجع دې. فَتَصِيرُ كَزِيَادَةِ الْوَلَدِ وَالثَّمَرَةِ نود بچی او ميوې د زياتوالی پشان شو.وَلَهُ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ، نو هر شريكوال ته د شركت حق دې.

تشريح: علامه مرغينانی رحمه الله فرمانی.چه په دې باب كې قاعده داده.چه كومه قرضه په دوو (دوه) شريكانو كې مشترك وی.او په دوی كې يو شريك څه برخه وصول كړی.نو دوهم شريك ته اختيار وی.كه غواړی.هغه دې وصول شوې برخه كې شريك شی.اوكه غواړی.اصل مديون نه د خپلې برخې (حصې) مطالبه اوكړی.په وصول شوې برخه كې د شريكيدلو اختيار ځكه دې.چه ده په وصولولو كې زياتوالی واخستلو. په دې معنی كې نغدو ته په قرضو باندې يو ډول زياتوالی دې.ځكه چې د پور ماليت آخر كار د وصولولو په لحاظ سره دی.نو كوم شريكوال چې اوسه پورې نه دی وصول كړی.د هغه په برخه كې ګويا ماليت نشته.او وصول كړی بالفعل د هغه ماليت حاصل كړو.نود شركت باوجود هغه زيات حاصل كړو.اودا زياتوالی چونكه اصل حق اړخ ته راجع دی.نو داسې شوه.لكه چې مشتركه وينځې نه بچی يا مشترك ونې نه ميوې پيدا شی.چه په دې كې هر شريكوال د مشاركت حق لری.

وَلَكِنَّهُ قَبْلَ الْمُشَارَكَةِ بَاقٍ عَلَى مِلْكِ الْقَابِضِ،خود مشاركت نه وړاندې دا په ملكيت د قابض باندې پاته دی. لِأَنَّ الْعَيْنَ غَيْرُ الدَّيْنِ حَقِيقَةً،ځكه چې عين په حقيقت كې غير دين دې. وَقَدْ قَبَضَهُ بَدَلًا عَنْ حَقِّهِ او ده د خپل



حق په عوض كې اخستې دې. فَيَمْلِكُهُ حَتَّى يَنْفُذَ تَصَرُّفُهُ فِيهِ نو هغه به ددې مالك وی.تردې چې په دې كې به دده تصرف نافذ وی. وَيَضْمَنُ لِشَرِيكِهِ حِصَّتَهُ،اود خپل شريك لپاره به د هغه دحصې ضامن وی.

تشريح: يعنی يو شريك چې كوم څه وصول كړی دی.هغه د دوهم شريك د شركت اختيارولو نه وړاندې د وصول كونكی په ملكيت باندې پاته پاتې دې.ځكه چې ده كوم څه وصول كړو.هغه عين شو.او په عين او دين كې حقيقتاً توپير دې.خو هغه چونكه عين د خپل حق په عوض كې اخستې دې. په دې وجه به هغه ددې مالك وی.تردې كه هغه په وصول كړی كې هغه د تحفه وغيره څه تصرف اوكړو.نو نافذ به وی.اود خپل شريك لپاره به دهغه د برخې (حصې) په اندازه ضامن وی.په دې وجه ئې مسئله كې ونيلې.دی. ﴿إلا أن يضمن له شريكه ربع الدين﴾

وَالدَّيْنُ الْمُشْتَرَكُ او مشترك قرضه هغه ده. يَكُونُ وَاجِبًا بِسَبَبٍ مُتَّحِدٍ كومه چې يو سبب سره واجب وی. كَثَمَنِ الْمَبِيعِ لكه د مبيع ثمن، إِذَا كَانَ صَفْقَةً وَاحِدَةً كله چې يو صفت سره وی. وَثَمَنِ الْمَالِ الْمُشْتَرَكِ وَالْمَوْرُوثِ بَيْنَهُمَا او لكه د مشترك يا موروث مال ثمن، وَقِيمَةِ الْمُسْتَهْلَكِ الْمُشْتَرَكِ او لكه د ضائع شوی مشترك مال قيمت،

تشريح: دين مشترك هغه ته وانی.كوم چې د يو سبب په ذريعه واجب وی.لكه مثلاً دهغه مبيع ثمن د كوم بيع چې په صفقه واحده سره شوې وی.مثلاً دواړو خپل خپل غلام يوځائې كړو.او په يوه بولې كې ئې د دوو (دوه) زره ( درهمو) په عوض خرڅ كړل.نودا ثمن به مشترك وی.كوم چې مشتری باندې قرضه ده.او لكه مثلاً هغه دين كوم چې د سړو موروث وی.يا د عين مستهلك مشترك قيمت وی.مثلاً ددوی دواړو مشترك مال يوكس ضائع كړو.نو ددې قيمت دوی كې مشترك دې.

إِذَا عَرَفْنَا هَذَا كله چې دا معلومه شوه. فَنَقُولُ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ:نو موږ وايو.چه په مسئله د كتاب كې شريك ته اختيار دې. لَهُ أَنْ يَتْبَعَ الَّذِي عَلَيْهِ الْأَصْلُ چې دده لمنه اونيسی.( يعنی هغه پسې اولګی ).په چا چې اصل دې. لِأَنَّ نَصِيبَهُ بَاقٍ فِي ذِمَّتِهِ ځكه چې دده برخه د مديون په ذمه پاته ده. لِأَنَّ الْقَابِضَ قَبَضَ نَصِيبَهُ ځكه چې قابض صرف خپله برخه وصول كړې ده. لَكِنْ لَهُ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ، خو ده ته د مشاركت حق دې. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ نِصْفَ الثَّوْبِ او كه غواړی.نيمه كپړه دې واخلی. لِأَنَّ لَهُ حَقَّ الْمُشَارَكَةِ ځكه چې ده ته د مشاركت حق دې. إِلَّا أَنْ يَضْمَنَ لَهُ شَرِيكُهُ رُبُعَ الدَّيْنِ خودا چې دده لپاره دده شريك د څلورمې برخې (حصې) د پور ضامن شی. لِأَنَّ حَقَّهُ فِي ذَلِكَ. ځكه چې دده حق هم په دې كې دې.

تشريح: هركله چې د مذكوره اصول، او دين مشترك تعريف مخې ته راغی؛نو اوس به د كتاب د مسئلې حكم دا وی.چه كوم شريك صلح اونكړله.هغه ته اختيار دې.چه د اصل مديون لمنه اونيسی. ځكه چې صلح كونكی صرف خپله برخه وصول كړې ده.د هغه برخه د مديون په ذمه پاته ده.خو غير مصالح ته د مشاركت حق هم دې.اودا اختيار هم دې.كه غواړی ،نيمه كپړه دې واخلی.په كوم چې صلح واقع شوې ده. ځكه چې هغه ته په كپړه كې هم حق مشاركت حاصل دې.خو كه دده شريك د څلورمې برخې (حصې) ضامن شی.نو بيا دې د كپړې نه نشی اخستلې.ځكه چې دده حق په اصل قرضه كې دی.

سوال:په كپړه كې حق مشاركت پكار نه دې.ځكه چې صلح هركله دجنس حق خلاف باندې وی.نو هغه معاوضه وی.او په معاوضه محضه كې شريك لپاره كپړه كې ( دحق) هيڅ لاره نه وی ؟

ځواب:په مبسوط خواهرزاده كې دی.چه د جنس حق خلاف باندې صلح عام احكام كې شراء وی.او په بعض كې د عين حق استيفاء، او معاوضه محضه په يو شان هم د بعض حق استيفاء نشی كيدی.

قَالَ (وَلَوِ اسْتَوْفَى نِصْفَ نَصِيبِهِ مِنَ الدَّيْنِ) كه په دې كې يوكس خپله نيمه قرضه وصول كړله. كَانَ لِشَرِيكِهِ أَنْ يُشَارِكَهُ فِيمَا قَبَضَ) نو دده شريك مقبوض كې شريك كيدای شی. لِمَا قُلْنَا (ثُمَّ يَرْجِعَانِ عَلَى الْغَرِيمِ بِالْبَاقِي) بيا

دواړه شريكان پاته پور مقروض نه وصول كړي. لِأَنَّهُمَا أُسْوَةٌ الشَّرِكَةِ فِي الْمَقْبُوضِ ځكه چې كله مقبوض كې دواړه شريك شو. لَا بُدَّ أَنْ يَبْقَى الْبَاقِي عَلَى الشَّرِكَةِ نو پاته به خامخا شركت باندې وي.

**تشريح:** اوكه يو شريك خپله برخه د دين وصول كړله. نو دوهم كس به په دې وصول شوي دين كې شريك وي. اود پاته دين مطالبه به دواړه په يو ځائې مديون نه كوي. ځكه چې هركله مقبوضه مقدار كې دوى دواړه شريك شو. نو پاته مانده دين به خامخا د دواړو په شركت باندې پاتې وي.

**د يو شريكوال د دين په بدله كښې د سامان اخستلو حكم**

قَالَ (وَلَوِ اشْتَرَى أَحَدُهُمَا بِنَصِيبِهِ مِنَ الدَّيْنِ سِلْعَةً) كه واخستلو په دوى كې يوكس پخپلې برخې (حصې) دين سره څه سامان، (كَانَ لِشَرِيكِهِ أَنْ يُضَمِّنَهُ رُبُعَ الدَّيْنِ) نو دده شريكوال دده نه د څلورمې برخې (حصې) تاوان اخستلې شي. لِأَنَّهُ صَارَ قَابِضًا حَقَّهُ بِالْمُقَاصَّةِ كَامِلًا ځكه چې اخستونكې خو پخپل حق باندې د مقاصه په وجه پوره قابض شو. لِأَنَّ مَبْنَى الْبَيْعِ عَلَى الْمُمَاكَسَةِ ځكه چې بيع په تحقيق كولو باندې مبنى ده. بِخِلَافِ الصُّلْحِ په خلاف د صلح، لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى الْإِغْمَاضِ وَالْحَطِيطَةِ، چې ددې مدار په چشم پوشۍ (بې پرواهۍ) او په څه ساقطولو باندې دي. فَلَوْ أَلْزَمْنَاهُ دَفْعَ رُبُعِ الدَّيْنِ نو كه د صلح كونكى په ذمه څلورمه برخه پور وركول لازم كړې شي. يَتَضَرَّرُ بِهِ نو دده څخه به ضرر اوچتولې شي. فَيَتَخَيَّرُ الْقَابِضُ نو قابض ته اختيار وركړې شو. كَمَا ذَكَرْنَا لكه څنګه چې مونږ ذكر كړل. وَلَا سَبِيلَ لِلشَّرِيكِ عَلَى الثَّوْبِ فِي الْبَيْعِ او غير قابض شريك ته اخستونكى شريكوال باندې د كپړې هيڅ لاره (د رجوع) نشته. لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِعَقْدِهِ ځكه چې هغه پخپل عقد سره ددې مالك شوې دې.

**تشريح:** كه يو شريكوال دخپلې برخې (حصې) دين په عوض مديون نه څه شئ واخستلو. نو دوهم شريكوال كه غواړي. هغه نه دې د څلورمې برخې (حصې) دين تاوان واخلى. كله چې دوى دواړه برابر شريكان وي. اوكه غواړي. اصل مديون نه دې مطالبه اوكړي. لكه څنګه چې روسته راروان دى. د څلورمې برخې (حصې) دين تاوان خو ځكه اخستلې شي. چه اخستونكې شريكوال خو پخپل حق باندې د مقاصه په وجه پوره طور باندې قابض شو. يعنى هركله چې ده د نصف دين برابر قيمت شئ واخستلو. نو ددې د نرخ نيمې پور سره بدله اوشوه. ځكه چې د بيع مدار په پوره نرخ لګولو باندې دې. اود صلح مدار په چشم پوشۍ او څه حق ساقطولو باندې دې. اوس كه د صلح كونكې شريكوال په ذمه د څلورمې برخې (حصې) دين اداكول لازم كړې شي. نو په دې سره به ده ته تاوان وي. مثلاً په سل روپۍ قرضه كې دده برخه پنځوس روپۍ وه. او غالباً په څلويښت روپۍ باندې به ده صلح كړې وي. نوكه دده په ذمه څلورمه برخه دين لازم كړې شي. نود پنځوسو نصف يعنى پنځويشت به لازم وي. حالانكه ده صرف پنځوس حاصل كړې دى. چه ددې نيمه شل دى. نو څلورمه برخه پور لازمولوكې به ده ته پنځه روپۍ تاوان وي. نو ده ته اختيار وركړې شو. كه غواړي، نيم مصالح عليه وركړي. او كه غواړي. څلورمه برخه پور وركړي. بيا غير قابض شريك ته د بيع په صورت كې د كپړې اخستونكې ته شريك سره په كپړه كې د شركت هيڅ لاره نشته. ځكه چې دې ددې مالك پخپل عقد بيع سره جوړ شوې دې. د دين سبب سره نه دې جوړ شوې.

وَالْاِسْتِيفَاءُ بِالْمُقَاصَّةِ بَيْنَ ثَمَنِهِ وَبَيْنَ الدَّيْنِ او استيفاء پر (په) مقاصه سره ده پر (په) مينځ د قيمت د دې او د پور

**تشريح:** د سوال مقدر ځواب دې. سوال دادې. چه دا خو منو. چه د كپړې اخستونكې شريكوال پخپل عقد بيع سره ددې مالك جوړ شوې دې. خو دده عقد خود دين مشترك د بعض برخې (حصې) په عوض كې شوې دې. اودا مقبوض كې د اشتراك تقاضا كوي. بيا ولې وائې، چه غير قابض شريكوال ته په كپړه كې د شركت هيڅ لاره نشته؟

ځواب* حاصل د ځواب دادې. چه استيفاء د مشترك برخې (حصې) په مقابله كې نه ده شوې. بلكه دهغه ثمن په مقابله كې شوې ده. كومه چې د مقاصې په طريقه دده لپاره مخصوص شوې ده. ځكه چې عقد بيع د



مشترى په ذمه كې د ثمن ثابتيدلو مقتضى ده. اود عقد په وخت دده برخه قرضدار اړخ ته منسوب كيدل، ددې منافى نه ده. ځكه چې نفوذ كه عين وي. اوكه دين وي. په عقود كې نه متعين كيږي.

**د غيرقابض شريكوال د حصې بيان**

وَلِلشَّرِيكِ أَنْ يَتْبَعَ الْغَرِيمَ فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا او غيرقابض شريكوال ته اختيار دې. چه د مديون لمنه اونيسي. (يعنى هغه پسې اولګى)، په هغه ټولو صورتونو كې كوم چې مونږ ذكر كړل. لِأَنَّ حَقَّهُ فِي ذِمَّتِهِ بَاقٍ ځكه چې دده حق دهغه په ذمه پاته دې. لِأَنَّ الْقَابِضَ اسْتَوْفَى نَصِيبَهُ حَقِيقَةً ځكه چې قابض په حقيقت كې خپله برخه وصول كړې ده. لَكِنْ لَهُ حَقُّ الْمُشَارَكَةِ خو دده لپاره حق مشاركت دې. فَلَهُ أَنْ لَا يُشَارِكَهُ نو ده ته دا اختيار دې. چه مشاركت اونكړي.

**تشريح:** غير قابض شريكوال ته په مذكوره ټولو صورتونو كې دا اختيار هم شته. چه د قرضدار لمنه اونيسي. او خپل حق وصول كړي. ځكه چې لا تر اوسه دده حق د قرضدار په ذمه پاته دې. ځكه چې وصول كونكى شريك، په حقيقت كې خپله برخه وصول كړې ده. خو ده ته قابض شريك سره د مشاركت حق دې. نو ده ته دا اختيار دې. چه مشاركت اونكړي.

فَلَوْ سَلَّمَ لَهُ مَا قَبَضَ بيا كه شريك وصول كونكى ته هغه اوسپارلو. كوم چې ده وصول كړې دې. ثُمَّ تَوِيَ مَا عَلَى الْغَرِيمِ او كوم چې مديون باندې پاته وو. هغه ډوب شو. لَهُ أَنْ يُشَارِكَ الْقَابِضَ نو هغه ته اختيار دې. قابض سره د مشاركت، لِأَنَّهُ رَضِيَ بِالتَّسْلِيمِ ځكه چې هغه سپارلو باندې ځكه راضى شوې وو. لِيُسَلِّمَ لَهُ مَا فِي ذِمَّةِ الْغَرِيمِ چې ده ته هغه ملاؤ شي. كوم چې د مديونه په ذمه دى. وَلَمْ يُسَلَّمْ او هغه ده ته ملاؤ نشو.

**تشريح:** بيا كه وصول كونكى شريكوال هغه مقدار كوم چې ده وصول كړې دې. پوره نې اوساتلو. يعنى ويش نې اونكړو. بيا كوم څه چې د مديون په ذمه پاته وو. هغه ډوب شو. مثلاً هغه فقير شو. او مړشو. نو ده ته به اختيار وي. چه هغه مقبوض مقدار كې د دوهم شريكوال برخه دار شي. ځكه چې دې په سلامت ساتلو ځكه راضى شوې وو. چه كوم څه مديون باندې پاته دې. هغه ده ته ملاؤ شي. او هركله چې هغه ده ته ملاؤ نشو. نو ده ته به د شركت اختيار وي.

وَلَوْ وَقَعَتِ الْمُقَاصَّةُ بِدَيْنٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنْ قَبْلُ اوكه مقاصه هغه دين سره وي. كومه چې په يو شريك باندې د مخكې نه وه. لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهِ الشَّرِيكُ نو دوهم شريك به د هغه نه هيڅ نه اخلى. لِأَنَّهُ قَاضٍ بِنَصِيبِهِ ځكه چې هغه خپلې برخې (حصې) نه پور خلاصونكې دې. لَا مُقْتَضٍ، وصولونكې نه دې. وَلَوْ أَبْرَأَهُ عَنْ نَصِيبِهِ اوكه د خپلې برخې (حصې) نه نې مديون برى كړو. فَكَذَلِكَ بيا هم دغه ډول ده. لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ وَلَيْسَ بِقَبْضٍ، ځكه چې دا ضائع كول دى. قبضه نه ده.

**تشريح:** كه په مسئله مذكوره كې دا صورت وي. چه د مديون څه پور د مخكې نه شريكينو كې د يو شريك په ذمه وي. نو په دې پور سره د شريك د برخې (حصې) بدله اوشوه. نو دوهم شريك د خپل شريك نه هيڅ واپس نشى اخستلې. ځكه چې هغه خپلې برخې (حصې) سره د مديون قرضه خلاصونكې شو. د پور خپله برخه وصولونكې نه دې. اوكه يو شريك د خپلې برخې (حصې) نه مديون برى كړو. بيا به هم دوهم شريكوال دده نه هيڅ نه اخلى. ځكه چې براءت ضائع كول دي. قبضه كول نه دى.

وَلَوْ أَبْرَأَهُ عَنِ الْبَعْضِ اوكه د بعض برخې (حصې) نه نې برى كړو. كَانَتْ قِسْمَةُ الْبَاقِي عَلَى مَا بَقِيَ مِنَ السِّهَامِ نود باته پور ويش به د پاته مانده حق موافق تقسيميږي.

**تشريح:** كه شريك مديون د خپلې برخې (حصې) نه برى كړو. نود پاته پور ويش به د پاته مانده حق موافق تقسيميږي. مثلاً په سل روپۍ پور كې يو شريكوال خپله نيمه برخه معاف كړله. نود كل پور د څلورمې برخې

(حصې) وتلو نه روسته پاته پنځه اويا روپۍ به دواړو كې داسې مشترك وي.چه د يوې برخې (حصې) معاف كونكې شو.او دوې (دوه) برخې (حصې) به د دوهم شريك وي.اوكه څه وصول كړې شو.بيا به هم دوى په دې كې د برخې (حصې) موافق شريك وي.

وَلَوْ أَخَّرَ أَحَدُهُمَا عَنْ نَصِيبِهِ اوكه يو شريك خپل مديون ته د خپلې برخې (حصې) مهلت وركړو. صَحَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ اعْتِبَارًا بِالْإِبْرَاءِ الْمُطْلَقِ، نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز صحيح دي.په مطلق براءت باندې قياس كاوه سره.

تشريح: كه شريكينو كې يوكس خپله برخه كې مديون ته مهلت وركړو.نود امام ابويوسف رحمه الله په نيز مطلق براءت باندې قياس كاوه سره،به دا تاخير او تاجيل ( نيټه وركول) صحيح وي.اود طرفينو رحمهما الله په نيز به صحيح نه وي.ځكه چې دا د قبضې نه وړاندې ويش ته مستلزم دې. ځكه چې د يو شريكوال برخه ميعادي شوه.چه ددې مطالبه بالفعل نشى كيدې.اود دوهم برخه غيرميعادي شوه.چه ددې مطالبه فى الحال كيداې شي.

وَلَا يَصِحُّ عِنْدَهُمَا(١) اود طرفينو رحمهما الله په نيز صحيح نه دي. لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى قِسْمَةِ الدَّيْنِ قَبْلَ الْقَبْضِ، ځكه چې دا د قبضې نه وړاندې د پور ويش ارخ ته مفضى دي.

تشريح: د اختلاف په بيان كې امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره ذكر كول،د عامو رواياتو كتابونو د مبسوط، اسرار، او ايضاح وغيره خلاف دى.ځكه چې دې كې د امام محمد رحمه الله قول امام ابويوسف رحمه الله سره ذكر دې.په منظومه، مختلف، او حصر كې هم اختلاف دغه ډول ذكر دې.

وَلَوْ غَصَبَ أَحَدُهُمَا عَيْنًا مِنْهُ اوكه يو شريك د مديون نه څه شئ غصب كړو. أَوْ اشْتَرَاهَا شِرَاءً فَاسِدًا ايا ئې په فاسد طريقه واخستلو. وَهَلَكَ فِي يَدِهِ او هغه دده سره ضائع شو. فَهُوَ قَبْضٌ نودا قبضه ده. وَالِاسْتِئْجَارُ بِنَصِيبِهِ قَبْضٌ،اوكه د خپلې برخې (حصې) په عوض ئې څه شئ كرايه باندې واخستلو.نودا هم قبضه ده. وَكَذَا الْإِحْرَاقُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ او دغه ډول سوزول د امام محمد رحمه الله په نيز، خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله ، وَالتَّزَوُّجُ بِهِ إِتْلَافٌ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ،او پخپله برخه باندې نكاح كول ضائع كول دى.په ظاهر الرواية كې ، وَكَذَا الصُّلْحُ عَلَيْهِ مِنْ جِنَايَةِ الْعَمْدِ دغه ډول پخپله برخه باندې د جنايت عمد نه صلح كول.

تشريح: كه يو شريكوال د مديون داسې شئ غصب كړو.چه ددې قيمت دده د پور برخې (حصې) برابر دې.يا ئې هغه نه په فاسد طريقه څه شئ واخستلو.او هغه هم ددې غصب كونكى په قبضه كې ضائع شو.نودا د خپلې برخې (حصې) پور قبضه شوه.اوكه د خپل پور برخې (حصې) په عوض ئې څه شئ په كرايه باندې واخستلو.مثلاً د يوسړي په ذمه د دوې (دوه) شريكانو يو زر درهم وو.نو يو شريك د خپلې برخې (حصې) پنځو سوو په عوض مديون نه يو كور يو كاله پورې اوسيدلو لپاره اجاره باندې واخستلو.او په دې كې يو كال اوسيدلو.نودا هم د خپلې برخې (حصې) قبضه شوه.دغه ډول د مديون څه شئ سوزول هم د امام محمد رحمه الله په نيز قبضه ده.په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله ، د بعضو په قول ددې صورت دادې.چه شريك د اور سروټكه اوغورزوله.چه په دې سره د مديون كپړې اوسوزيدلې.اوكه كپړه ئې واخستله.او په قصد ئې اوسوزوله.نو بالاتفاق به ضامن وي.

**د مال سلم په دوې (دوه) شريكانو كښې د يوكس پخپلې حصې سره د صلح كولو حكم**

قَالَ (وَإِذَا كَانَ السَّلَمُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ كه د سلم مال دوې (دوه) شريكانو كې مشترك وي. فَصَالَحَ أَحَدُهُمَا مِنْ

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى العناية (٤٠٥١٧) وملتقى الأبحر(٤٣٧١٣) نقلاً عن القول الراجح (١٢٠٨)_



نَصِيبِهِ عَلَى رَأْسِ الْمَالِ او يو شريك پخپلې برخې (حصې) راس المال باندې صلح اوكړله. لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله نودا جائز نه ده.د طرفينو رحمهما الله په نيز. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. يَجُوزُ الصُّلْحُ اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الدُّيُونِ، چې صلح جائز ده.په نورو قرضو باندې، او په دې صورت باندې قياس كاوه سره،، وَبِمَا إِذَا اشْتَرَيَا عَبْدًا اكله چې دوى يو غلام واخستلو. فَأَقَالَ أَحَدُهُمَا فِي نَصِيبِهِ. بيا يو پخپله برخه كې اقاله اوكړله.

تشريح: دوې (دوه) سړو يو خاني يو كر غنمو كې عقد سلم اوكړو.او سل درهم راس المال مقرر شو.او هريو د خپلې خپلې برخې (حصې) پنځوس پنځوس درهم وركړل.ددې نه روسته يو رب السلم د خپل نصف كر غنمو په بدله كې پنځوس درهمو باندې مسلم اليه سره صلح اوكړله.او هغه درهم ئې واخستل.يعنى راس المال نه ئې خپله برخه واخستله،او سلم ئې پريښودلو .نود طرفينو رحمهما الله په نيز دا صلح جائز نه ده.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز جائز ده.ځكه چې هغه پخپل خالص حق كې تصرف كړې دې.نو لكه ځكه چې په نورو ديونو كې صلح جائز ده.دغه ډول به دلته كې هم جائز وي.

دا دليل خو په قياس د دين دې. دوهم په قياس د عين دې.چه كه دواړو يو غلام واخستلو.بيا يو شريك پخپله برخه كې اقاله اوكړله.نو جائز ده.نو په دين او عين دواړو باندې قياس صحيح دې.

وَلَهُمَا د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّهُ لَوْ جَازَ فِي نَصِيبِهِ خَاصَّةً كه دا صلح خاص كر دده په برخه كې جائز وي. يَكُونُ قِسْمَةُ الدَّيْنِ فِي الذِّمَّةِ،نود داسې پور ويش به وي.كومه چې په ذمه كې ثابت ده. وَلَوْ جَازَ فِي نَصِيبِهِمَا اوكه د دواړو برخه كې جائز وي. لَا بُدَّ مِنْ إِجَازَةِ الْآخَرِ نود دوهم اجازت ضروري دې.

تشريح: د طرفينو رحمهما الله دليل په دوې (دوه) وجو باندې دې. ړومبۍ وجه داده.چه په دې صلح كې به دين قبضې نه وړاندې ويش لازميږي.اود دين ويش د قبضې نه وړاندې باطل دې.نو صلح به جائز نه وي.ددې تشريح داده.چه د مذكوره صلح د جواز دوې (دوه) صورتونه دى.يا به خو خاص كر ددې شريك په برخه كې جائز وي.يا د دواړو په برخو كې به په نيمه كې جائز وي.په ړومبى صورت كې د دين د قبضې نه وړاندې ويش لازميږي.ځكه چې دده خاص برخه په تميز او تعين سره كيږي.او تميز د ويش نه بغير نه كيږي.اوكه د دواړو په برخه كې جائز وي.نود دوهم شريك اجازت ضروري دې.اوهغه اونه موندې شو.

بِخِلَافِ شِرَاءِ الْعَيْنِ،په خلاف د عين شئ د اخستلو، وَهَذَا او وجه ددې داده. لِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ صَارَ وَاجِبًا بِالْعَقْدِ چې مسلم فيه خو د عقد په وجه واجب شو. وَالْعَقْدُ قَامَ بِهِمَا او عقد دوى دواړو سره قائم دې. فَلَا يَنْفَرِدُ أَحَدُهُمَا بِرَفْعِهِ، نودا يواځې يوكس نشي اوچتولې.

تشريح: د امام ابويوسف رحمه الله د قياس ځواب دې.چه د مال عين اخستلو نه روسته د يو شريك اقاله كول ځكه جائز ده.چه په دې كې عقد تام كيدلو نه روسته يو شريك دا فسخ كول غواړي.چه ددې لپاره د دواړو اړتيا نشته.په خلاف د دين معاملې،چه دا تركومه پورې قبضه كې رانشى.هغه وخته پورې دا په ابتدائى حالت كې وي.نو ددې عقد لپاره ابتداء كې د دواړو اړتيا دې.

حاصل توپير دا شو.چه په مال عين كې اقاله د عقد نه روسته كيږي.او مال پور كې دعقد په حالت كې كيږي.او مسلم فيه هم يو پور دې.نود دواړو بغير به نه فسخ كيږي.د ذكر شوى توپير وجه داده.چه قرضه مسلم فيه دعقد په وجه واجب او ثابت شوې ده.او عقد دوى دواړو شريكانو سره قائم ده.نو يوكس ته به د عقد فسخ كاوه اختيار نه وي.

وَلِأَنَّهُ لَوْ جَازَ او ځكه كه دا صلح جائز وي. لَشَارَكَهُ فِي الْمَقْبُوضِ،نو دوهم شريك به مقبوض كې دده مشارك وي. فَإِذَا شَارَكَهُ فِيهِ او هركله چې دې په دې كې مشارك شو. رَجَعَ الْمُصَالِحُ عَلَى مَنْ عَلَيْهِ بِذَلِكَ نو صلح كونكې به

هغه مقدار مسلم اليه نه واپس اخلي.په كوم چې قبضه ده. فَيُؤَدِّي إِلَى عَوْدِ السَّلَمِ بَعْدَ سُقُوطِهِ. نودا به د سلم د سقوط نه روسته ددې واپس كاوه ارخ ته مفضي وي.

تشريح: د طرفينو رحمهما الله د دليل دويمه وجه داده.كه مذكوره صلح جائز شي.نو صلح كونكى راس المال نه كوم څه وصول كړى د.هغې كې به دوهم شريك برخه دار وي.ځكه چې صفقه واحده ده.اود دواړو شركت قائم دې.بيا هركله چې دې برخه دار شو.اوخپله برخه ئې واخستله.نو څومره ئې چې اخستې ده.هم په دغه اندازه به مسلم فيه لپاره صلح كونكې دمسلم اليه نه واپس اخلي.په ځا چې قرضه موجود ده.ځكه چې اوس مسلم اليه باندې نيم مسلم فيه پاتـه دې.حالانكـه ده د صلح پـه وجـه عقـد سلم مـات كـړې وو.نود عقد سلم ساقطيدلو نه روسته واپس كيدل لازم شو.اودا باطل دى.

قَالُوا: مشائخو ونيلى دى. هَذَا إِذَا خَلَطَا رَأْسَ الْمَالِ، چې دا هغه وخت دى.كله چې دواړو راس المال ملاؤ كړې وي. فَإِنْ لَمْ يَكُونَا كه ملاؤ كړې ئې نه وي. قَدْ خَلَطَاهُ فَعَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ هُوَ عَلَى الْخِلَافِ،نو په ړومبى صورت كې اختلاف باندې دې. وَعَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي هُوَ عَلَى الِاتِّفَاقِ او دوهم صورت كې اتفاق باندې دې.

تشريح: متاخرينو مشائخو ونيلى دى.چه مذكوره اختلاف هغه وخت دى.كله چې دواړو شريكانو راس المال يو ځاني كړې وي.او عقد سلم ئې كړې وي.اوكه ملاؤ كړې ئې نه وي.بلكه هر يو خپل راس المال جلا وركړې وي.نود مذكوره دليل د ړومبى: امله په لحاظ داهم په دې اختلاف مبنى ده.چه د طرفينو رحمهما الله په نيز د يو شريك صلح جائز نه ده.ځكه كه دا صلح صرف د صلح كونكى په برخه كې جائز وي.نود مسلم اليه په ذمه چې كوم پور دې.د هغې د قبضې نه وړاندې ويش لازميږي.چه داجائز نه دې.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز صلح جائز ده.

۲ اود وجه ثانى د دليل په لحاظ صلح بالاتفاق جائز ده.ځكه چې هركله راس المال دواړو جلا وركړې دې.نو په دې كې ددوى شركت اونشو.نو په مقبوض مقدار كې هم مصالح شريك سره د ساكت شريكوال هيڅ مشاركت نه وي.ځكه چې دا مال صرف هم دده حق دې.

فائده ◉ په كفايه كې دى.صحيح داده.چه راس المال ئې يوځاني كړې وي.اوكه نه وي.په دواړوصورتونوكې اختلاف ثابت دې.فرق صرف دومره دې.چه د ملاوولو په صورت كې د طرفينو رحمهما الله په نيز د صلح باطليدل دواړو وجو سره دى.اود نه ملاوولو په صورت كې بطلان صرف په يوه وجه دې. يعنى وجه ثانى سره چې په مقبوض كې دوهم شريك ته د ملكرتيا (حصه دارۍ) اختيار نشته.بيا په شرح عنايه كې دى.چه اختلاف د راس المال ملاوولو په صورت كې دې.يا على الاطلاق دې؟ په دې اړه كې د متاخرينو د اختلاف منشاء داده.چه امام محمد رحمه الله په كتاب البيوع كې اختلاف ملاوولو په صورت كې ذكركړې دې.او په كتاب الصلح كې ئې د نه ملاوولو صراحت سره ذكر كړې دې.چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به دوهم شريك د مصالح شريك سره مقبوضه مقدار كې برخه دار نه وي.اود طرفينو رحمهما الله قول ئې نه دې ذكر كړې. ددې نه بعضو دا ګنړلې ده.چه نه ذكركول په دې وجه دى.چه دې كې اتفاق دې.

## فصل في التخارج

ژباړه: (دا) فصل د تخارج (په بيان كې) دې.

تشريح: په دې فصل كې د تخارج د مسئلو بيان دې.تخارج د خروج نه تفاعل دې.په لغت كې خپل منځ كې ويش سره د هر يو برخه اوبنكلو، يا د هر يو د برخې (حصې) په اندازه د نفقې اخراج (اوبنكلو) ته وائى.په اصطلاح د شرع كې د تخارج مطلب دا وى.چه واړه وارثان متفق شى.او يو وارث ته څه مال وركړى.اود ميراث نه ئې اوباسى.ددې واقع كيدل ډيركم كيږي.په دې وجه د خپلې برخې (حصې) اخستلو نه بغير څوك هم د منځ نه خارج كيدلو باندې نه راضى كيږي.يا په دې وجه چې ددې وقوع د ژوند نه روسته كيږي.ځكه



ئې دا د كتاب په اخر كې راوستې دې.

فائده اولى ◉ د تخارج سبب وارثانو كې خارجيدونكې طلب كول دى.كله چې نور وارثان رضامند وي. ددې شرطونه دادى.① كل تركه يا بعض تركه په قرضونو كې راګيره نه وي.② كوم څه چې خارج ته وركړې شو.هغه د هغې نه زياته وي.كومه چې په جنس تركه كې د هغه برخه ده.كله چې تركه كې سره زر، سپين زر او ددې نه علاوه هرڅه ملاؤ شوې وي.③ د بعضو په نيز دا شرط هم دې.چه د صلح په وخت دا خبره معلومه وي.چه په تركه كې كوم مالونه دى.هغه دكوم جنس ځنې دى.( بنايه)

فائده ثانيه ◉ د تخارج صورت دادې.چه د يوې ښځې انتقال اوشو.چه هغې خپل خاوند، يوه لور، او يوه حقيقى خور پريخودله.نو مسئله كې ربع، نصف، او پاتـه دې.او په تركه كې كپړې او دنانير دى.اوس ميره سره په كپړو باندې صلح اوشوه.نو د لور او خور پـه منځ كې بـه ويش دريو برخو باندې كيږي.نو دوې (دوه) برخې (حصې) به لور او يوه برخه به خور ته ملاويږي.

**په مشترك تركه كښې يو وارث له برخه وركولو سره د اوبنكلو حكم**

وَإِذَا كَانَتِ التَّرِكَةُ بَيْنَ وَرَثَةٍ كله چې تركه په يو څو وارثانو كې مشترك وي. فَأَخْرَجُوا أَحَدَهُمْ مِنْهَا بِمَالٍ أَعْطَوْهُ إِيَّاهُ بيا دوى جلا كړى.ددې نه يو كس ته په مال وركاوه سره، وَالتَّرِكَةُ عَقَارٌ أَوْ عُرُوضٌ ودا تركه مځكه يا اسباب (سامان) وي. جَازَ نو جائز دى. قَلِيلًا كَانَ مَا أَعْطَوْهُ إِيَّاهُ كوم چې دوى ده ته وركړى دى.كه هغه كم وي. أَوْ كَثِيرًا اوكه زيات وي. لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ بَيْعًا ځكه چې دا صلح د بيع په طور باندې صحيح جوړول ممكن دى.

تشريح: كه د يوكس انتقال اوشى.او هغه په تركه كې څه سامان يا مځكه پريږدى.او وارثان يو وارث ته څه مال وركړى.اود ميراث نه ئې خارج كړى.نو تخارج صحيح دې.كه هغه مال كم وي.كوم چې وارثانو هغه ته وركړې دې.اوكه زيات وي.ځكه چې دا صلح د بيع په طور صحيح جوړول ممكن دى.او بيع په دواړو صورتونو كې صحيح كيږي.كه ثمن كم وي.اوكه زيات وي.او د بيع په طور صحيح كول ځكه متعين دى.چه دې ته براءت نشى وئيلې كيدې.ځكه چې اعيان غير مضمون نه براءت نه صحيح كيږي.

وَفِيهِ أَثَرُ عُثْمَانَ،او په دې كې د حضرت عثمان رضي الله عنه اثر وارد دې.

تشريح: د تخارج په جواز كې د حضرت عثمان رضي الله عنه اثر موجود دې.چه دوى تماضر بنت اصبغ اشجعيه د عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ښځې ته په مصالحت ددوى د اتمې برخې (حصې) دڅلورمې نه اتيا زره ديناره باندې جائز اوساتله.

فَإِنَّهُ صَالَحَ تُمَاضِرَ الْأَشْجَعِيَّةَ چې دوى تماضر اشجعيه صلح كړې وه

تشريح: تماضر بنت اصبغ اشجعيه، د عربو بادشاه د امرئ القيس د نسل نه يوه شاعره ښځه وه.چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم باندې ئې ايمان راوړلې وو.دوى صلى الله عليه وسلم حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته ددوى سره د نكاح كاوه اجازت وركړو.نوهغوى د تماضرې سره نكاح اوكړله.او ددوى د بطن نه صرف يو هلك ابوسلمه پيدا شو.لكه چې ابن سعد په طبقات كې د حضرت ابن عمر رضى الله عنهما نه روايت كړې دې. «قال بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه في سبع مائة إلى دومة الجندل في شعبان سنة ست من الهجرة فدعا هم إلى الإسلام فأبوا ثلاثاً ثم أسلم رأسهم الأصبغ بن عمر و الكلبي، فبعث عبدالرحمن إلى النبي صلى الله عليه وسلم فأخبره فكتب إليه أن تزوج تماضر بنت الأصبغ فتزوجها و رجع بها، و هي أم أبي سلمة بن عبدالرحمن لم تلد له غيره» خو تماضر نازك مزاجه او لږه بد اخلاقه وه.حضرت عبدالرحمن هغې ته دوې (دوه) طلاقونه وركړى وو.اودا په عدت كې وه.كله چې حضرت عبدالرحمن رضي الله عنه بيمار شو.نو دريم طلاق ئې وركړو.او ددې د عدت تيريدلو نـه روسته د هغوى انتقال (وفات) اوشو.خو حضرت عثمان رضي الله عنه دا فرار اوګرځولو.او ميراث ئې وركړو.دا هم ممكن ده.چه انتقال ددوى په عدت كې واقع شوې وي.اود حضرت عثمان رضي الله عنه د قضاء فيصله د عدت نه روسته وي.ځكه چې روايت كې دا الفاظ دى. «فلما مرض عبدالرحمن طلقها

الثالثة فورثها عثمان ﷺ منه بعد القضاء العدة﴾ ددې مطلب دادې چه د ميراث حکم ئې د عدت تيريدلو نه روسته ورکړې وو. اګرچه د حضرت عبدالرحمن ﷺ انتقال ددوي په عدت کې شوې وو.

| |
|---|
| امْرَأَةَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې د عبدالرحمن بن عوف ﷺ ښځې سره صلح کړې وه |

**تشريح:** عبدالرحمن ابن عوف بن عبدعوف بن الحارث بن زهره بن كلاب الزهري القرشي البدري احد العشرة المبشرة و احد اصحاب الشوري ، مشهور جليل القدر صحابى دې.په پيل زمانه کې ئې د حضرت ابوبکر ﷺ په لاس باندې اسلام راوړلې وو.دوي حبشې اړخ ته دواړه ځل هجرت فرمائيلې وو.په ټولو غزواتو کې موجود شوې وو.او په غزوهٔ احد کې ثابت قدم پاتې شوې وو.په عزوهٔ تبوك کې نبى کريم ﷺ دوي پسې شاته لمونځ کړې دې.او د لمونځ کومه برخه چې فوت شوې وه.هغه ئې پوره اوفرمائيله.دوي د ۷۲ کالو په عمر کې سن ۳۲ھ کې وفات شوى دى.او په جنت البقيع کې دفن شو.دوي ډير زيات دولت مند او مالداره وو.کله چې ددوي د مرګ وخت را نژدې شو.نو په يوه ورځ کې ئې ديرش غلامان آزاد کړل.په طبقات ابن سعد کې دي.﴿ان عبدالرحمن بن عوف توفي وكان فيما ترك ذهب قطع بالفؤوس حتى مجلت من أيدي الرجال﴾ چې کله د حضرت عبدالرحمن ﷺ وفات اوشو.نود ترکې د نورو څيزونو نه علاوه صرف سره زر دومره ډير وو.چه په تبرونو باندې مات کړې شو.ترڅې چې د خلګو په لاسونو کې پولئ او غوټې پيدا شوې.

| |
|---|
| عَنْ رُبْعِ ثُمُنِهَا عَلٰى ثَمَانِيْنَ أَلْفِ دِيْنَارٍ. (۱) د اتمې برخې (حصې) څلورمې نه اتيا زره ديناره باندې. |

**تشريح:** ددې نه معلومه شوه.چه د حضرت عبدالرحمن څلور بيبيانې دى.اود بيبيانو حق اتمه برخه وى.کومه چې ټولې بيبيانې برابر تقسيمه وى.نو هرکله چې تماضر د اتمې څلورمه اوموندله.نو معلومه شوه.چه بيبيانې څلور وې.لکه د ابن سعد په ذکر شوى روايت کې ددې تصريح هم موجود ده.،،و ترك ثلاث نسوة،، وارد دې.او په يو روايت کې د څلورمې ښځې برخه يو لاکه ذکر شوې ده.الفاظ دادى.﴿فاخرجت بمائة ألف و هي احدى الأربع﴾ په دې کې تطبيق داسې ممکن دې.چه د تماضر سره څلور دى.او د تماضر په اوښکلو سره په ترکه کې چې دچا شرکت پاتې شو.هغوى هم درې وې.

### د سرو زرو او سپينو زرو په ترکه کښې د برابرئ حکم

| |
|---|
| قَالَ (وَإِنْ كَانَتِ التَّرِكَةُ فِضَّةً) وکه ترکه سپين زر وى. (فَأَعْطَوْهُ ذَهَبًا) و هغوى سره زر ورکړى. (أَوْ كَانَ ذَهَبًا) يا سره زر وى. (فَأَعْطَوْهُ فِضَّةً) او هغوى سپين زر ورکړى. (فَهُوَ كَذٰلِكَ) بيا هم دغه ډول ده. لِأَنَّهُ بَيْعُ الْجِنْسِ بِخِلَافِ الْجِنْسِ خکه چې دا د يو جنس بيع ده.خلاف جنس سره. فَلَا يُعْتَبَرُ التَّسَاوِي نو برابرى به معتبر نه وى. وَيُعْتَبَرُ التَّقَابُضُ فِي الْمَجْلِسِ او په مجلس کې قبضه کيدل معتبر دى. لِأَنَّهُ صَرْفٌ خکه چې دا بيع صرف ده. غَيْرَ أَنَّ الَّذِي فِي يَدِهِ بَقِيَّةُ التَّرِكَةِ إِنْ كَانَ جَاحِدًا صرف دومره خبره ده.چه د کوم کس په قبضه کې پاته ترکه ده.که هغه منکر وى. يَكْتَفِي بِذٰلِكَ الْقَبْضِ نو هم په دې قبضه به اکتفاء کولې شى. لِأَنَّهُ قَبْضُ ضَمَانٍ خکه چې دا ضمانتى قبضه ده. فَيَنُوْبُ عَنْ قَبْضِ الصُّلْحِ نو قبضه به دصلح نائب جوړيږى. وَإِنْ كَانَ مُقِرًّا او که هغه مقر وى. لَا بُدَّ مِنْ تَجْدِيْدِ الْقَبْضِ نو جديد قبضه ضرورى ده. لِأَنَّهُ قَبْضُ أَمَانَةٍ خکه چې دا قبضه د امانت ده. فَلَا يَنُوْبُ عَنْ قَبْضِ الصُّلْحِ نو قبضه به د صلح نائب نه وى. |

**تشريح:** که د مړى په ترکه کې سپين زر وى.او وارثان ددې په عوض کې سره زر ورکړى.يا په ترکه کې سره زر وى.او دوى په عوض کې سپين زر ورکړى.بيا هم دغه حکم دې.چه عوض کم وى.اوکه زيات وى.واړه جائز دى.خکه چې دا يو جنس ددې د خلاف جنس په عوض خرڅول دى.نو په دې کې به برابر معتبر نه وى.البته

---

۱)غربه الزيلعي رحمه الله بهذا الفظ ثم قال وروى عبدالرزاق فى مصنفه فى البيوع .. عن عمروبن دينا رأن إمرأة عبدالرحمن [بن] عوف أخرجها أهله من ثلث الثمن بثلاثة وثمانين ألف درهم (نصب الراية ۴\۲۶۹)_



هم په دې مجلس کې قبضه کول شرط دى.خکه چې دا بيع صرف دې.او په بيع صرف کې تقابض شرط دې.خو دومره خبره ده.چه د کوم وارث په قبضه کې پاته ترکه ده.که هغه ددې امر نه منکر وى.چه ترکه دده په قبضه کې ده.نو هم په دې تيره شوې قبضې به اکتفاء کولې شى.اود جديد قبضې ارتيا به نه وى.خکه چې دده د انکار په وجه دده قبضه ضمانتى قبضه ده.يعنى هغه د انکار په وجه د مال ضامن شو.نود صلح په وجه چې کومه قبضه لازم شوې ده.ددې په ځائې به دده موجوده قبضه کافى وى.اوهغه وارث دچا په قبضه کې چې پاته ترکه ده.هغه قبضه د امانت ده.چه دا صلح د قبضې نائب نشى جوړيدلې.او قاعده کليه ده.چه هرکله قبضې د امانت يا ضمانت په لحاظ سره متجانس وى.نو په دوى کې يو د بل نائب کيداې شى.او که متجانس نه وى.مختلف وى.نو ضمانتى قبضه د امانت قبضې نائب کيداې شى.ددې عکس نشى کيدې.

| |
|---|
| (وَإِنْ كَانَتِ التَّرِكَةُ ذَهَبًا وَفِضَّةً) اوکه ترکه سره زر او سپين زر وى. وَغَيْرَ ذٰلِكَ او ددې نه علاوه هم وى. فَصَالَحُوْهُ عَلٰى ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ او هغه صرف سپين زر يا سره زر باندې صلح اوکړى. فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُوْنَ مَا أَعْطَوْهُ أَكْثَرَ مِنْ نَصِيْبِهِ مِنْ ذٰلِكَ الْجِنْسِ نو ددوى ورکړې شوې مال زيات کيدل ضرورى دى.دده د هغه برخې (حصې) نه کوم چې ددې جنس څنې دې. حَتّٰى يَكُوْنَ نَصِيْبُهُ بِمِثْلِهِ چې دده برخه د هغې برابره شى. وَالزِّيَادَةُ بِحَقِّهِ مِنْ بَقِيَّةِ التَّرِكَةِ او زياتى مقدار د هغه حق په مقابل کې شى.کوم چې په پاته ميراث کې دې. احْتِرَازًا عَنِ الرِّبَا. د سود نه بچ کيدلو دپاره، |

**تشريح:** اوکه په ترکه کې سره زر، سپين زراو اسباب دواړه وى.او وارثان مذکوره وارث ته صرف سره زر يا سپين زر ورکړى.او خارج ئې کړى.نودا تخارج به صحيح نه وى.ترکومه پورې چې هغه سپين يا سره زر کوم چې وارث ته ورکړې شوى دى.د هغه مقدار نه زيات نه وى.کوم چې وارث ته ددې جنس برخې (حصې) نه رسيدونکې دى.مثلاً مذکوره وارث ته ميراث نه لس درهمه او څه اسباب رسيږى.نود تخارج صحت لپاره ضرورى ده.چه د لس درهمو نه په زيات باندې صلح اوشى.چه لس درهمه د لس درهمو په عوض کې شى.او زياتى درهم د اسبابو په عوض کې شى.ګنى سود به لازميږى.که عوض دده د برخې (حصې) نه کم وى.اوکه ددې برابر وى.خکه چې دواړو صورتونو کې د معاوضې په طور جائز کول مشکل دى.خکه چې سود لازميږى.

❁ سوال: دا څه ضرورى ده.چه معامله د معاوضې په طريقه وى.دا هم کيداې شى.چه د براءت طريقې سره وى.ګويا هغه د پاته نه برى کړو؟

ځواب: د براءت طريقې سره جائز نشى ګرځولې کيدې.خکه چې ترکه مال عين دې.اود اعيانو نه برى کول باطل دى.خکه چې د اسقاط عمل په ديونو کې کيږى.اعيانو کې نه کيږى.په ذخيره او شرح هدايه کې هم داسې ذکر دى.

❁ خو په دې باندې صاحب د نتائج ونيلى دى.چه د براءت طريقې سره د صلح (او معاملې) نه صحيح کيدل زما په نيز محل نظر (او اشکال) دى.خکه چې نفس اعيان نه براءت اګرچه باطل دې.خود اعيان دعوې نه برى کول د فقهاؤ د تصريح مطابق صحيح دى.اودا په کتاب کې هم تير شو.او هرکله چې د عاقل بالغ کلام حتى الامکان صحيح کول ضرورى دى.نود براءت طريقه اختيارول پکار دى.

❁ ممکن ده چې څوك دا اووائى.چه په کتاب کې دا مسئله تيره شوه.که يوکس د کور دعوه اوکړله.او ددې په يوه برخه ئې صلح اوکړله.نودا صلح صحيح نه ده.خکه چې کوم څه مدعى اخستى دى.هغه دهغه عين حق دې.او پاته کې هغه پخپله دعوه باندې دې.او زير بحث مسئله بالکل ددې مسئلې مثال دې.نو هرکله چې په دې مسئله کې صلح صحيح نشوه.نو په دې مسئله کې څنګه صحيح کيداې شى؟

ځواب: دادې.چه کوم ځائې کې دا مسئله تيره شوې ده.د شروحو بزرګانو ددې صراحت هم کړې دې.چه دا د ظاهرالرواية ځواب دې.ظاهرالرواية هم دادې.چه صلح صحيح وى.

وَلَابُدَّ مِنَ التَّقَابُضِ فِيْمَا يُقَابِلُ نَصِيْبَهٗ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او كوم عوض چې دده د سپينو او سرو زرو د برخې (حصې) په مقابله كې دې په هغې كې قبضه كيدل ضروري دی. لِأَنَّهٗ صَرْفٌ فِيْ هٰذَا الْقَدْرِ، خكه چې دې مقدار كې صلح بيع صرف ده. وَلَوْ كَانَ بَدَلُ الصُّلْحِ عَرَضًا او كه بدل صلح اسباب وی. جَازَ مُطْلَقًا لِعَدَمِ الرِّبَا، نو مطلقاً جائز ده.د سود نه كيدلو په وجه، وَلَوْ كَانَ فِي التَّرِكَةِ دَرَاهِمُ وَدَنَانِيْرُ وَبَدَلُ الصُّلْحِ دَرَاهِمُ وَدَنَانِيْرُ أَيْضًا جَازَ الصُّلْحُ كَيْفَمَا كَانَ صَرْفًا لِلْجِنْسِ إِلَى خِلَافِ الْجِنْسِ كَمَا فِي الْبَيْعِ لٰكِنْ يُشْتَرَطُ التَّقَابُضُ لِلصَّرْفِ

**تشریح:** بيا په ذكر شوی صورت كې دده د سرو او سپينو زرو برخې (حصې) په مقابله كې چې څومره عوض نقد دې په هغې باندې هم په دې مجلس كې قبضه كول ضروری دی. خكه چې دې مقدار كې دا صلح د بيع صرف په معنی كې ده.او بيع صرف كې تقابض فی المجلس شرط دې. او كه بدل صلح كوم اسباب وی.نو صلح مطلقاً جائز ده.كه قبضه وی.او كه نه وی.خكه چې اوس په هيڅ صورت كې سود نه متحقق كيږی.

### د مړی نه روسته د هغه په مال كښې په كومو صورتونو كښې صلح جائز ده؟

قَالَ (وَإِذَا كَانَ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ عَلَى النَّاسِ) كه په تركه كې دين وی خلكو باندې (فَأَدْخَلُوْهُ فِي الصُّلْحِ) او دوی يوكس په صلح كې داخل كړی. (عَلٰى أَنْ يُخْرِجُوا الْمُصَالَحَ عَنْهُ) په دې شرط چې صلح كونكې به خارجوی د دين نه (وَيَكُوْنَ الدَّيْنُ لَهُمْ) او واره دين به ددوی وی. (فَالصُّلْحُ بَاطِلٌ) نودا صلح باطل ده. لِأَنَّ فِيْهِ تَمْلِيْكَ الدَّيْنِ مِنْ غَيْرِ مَنْ عَلَيْهِ خكه چې په دې كښې د پور مالك كول دی.دداسې سړی په چا چې قرضه نشته. وَهُوَ حِصَّةُ الْمُصَالِحِ او هغه د صلح كونكې برخه ده. (وَإِنْ شَرَطُوْا أَنْ يُبَرِّئَ الْغُرَمَاءَ مِنْهُ) او كه دا شرط ئې اوكړو.چه صلح كونكې قرضداران د خپلې برخې (حصې) نه بری كړی. (وَلَا يَرْجِعُ عَلَيْهِمْ بِنَصِيْبِ الْمُصَالِحِ) او دده دحصې لپاره هيڅ يو وارث قرضدارانو باندې رجوع نه كوی. (فَالصُّلْحُ جَائِزٌ) نو صلح جائز ده. لِأَنَّهٗ إِسْقَاطٌ خكه چې دا اسقاط دې. وَهُوَ تَمْلِيْكُ الدَّيْنِ مِمَّنْ عَلَيْهِ الدَّيْنُ يا د پور مالك كول دی.دهغه كس په چاچه قرضه ده. وَهُوَ جَائِزٌ اودا جائز ده.

**تشریح:** كه د مړی په تركه كې خلكو باندې څه قرضونه دی.او دده وارثان يو وارث په دې شرط باندې خارج كړی.چه ديون به پاته وارثانو لپاره وی.نودا تخارج صحيح نه دې.خكه چې هركله خارج وارث ديون پاته وارث لپاره پريخودل.نو لكه چې ده پاته وارثان د خپلې برخې (حصې) ديونو مالك جوړكړو.حالانكه د مديون نه علاوه بل څوك د دين مالك جوړول باطل دی.كه وارثان ددې خبرې شرط اوكړی.چه مصالح د خپلې برخې (حصې) دين نه قرضداران بری الذمه كړی.او د تركې اعيان نه په مال باندې صلح اوكړی.نو صحيح به وی.خكه چې په دې ابراء كې د دين مالك هم هغه كس جوړكړې شوې دې.په چاچه دين دې.او دا صحيح ده.نو دده د برخې (حصې) په اندازه به مديون نه دين ساقطيږی.

وَهٰذِهٖ حِيْلَةُ الْجَوَازِ اودا صلح جواز يوه حيله ده. وَأُخْرَى أَنْ يُعَجِّلُوْا قَضَاءَ نَصِيْبِهٖ مُتَبَرِّعِيْنَ، او دويمه حيله دا ده. چې صلح كونكې ته دده برخه د تبرع په طور اداكړی. وَفِي الْوَجْهَيْنِ ضَرَرٌ بِبَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ. خو په دواړو صورتونو كې د پاته وارثانو نقصان دې. وَالْأَوْجَهُ أَنْ يُقْرِضُوا الْمُصَالِحَ مِقْدَارَ نَصِيْبِهٖ او ښه حيله داده.چه مصالح ته دده دحصې په اندازه پور وركړی. وَيُصَالِحُوْا عَمَّا وَرَاءَ الدَّيْنِ او دې نه په علاوه باندې صلح اوكړی. وَيُحِيْلُهُمْ عَلَى اسْتِيْفَاءِ نَصِيْبِهٖ مِنَ الْغُرَمَاءِ، او مصالح د قرضدارانو نه د خپلې برخې (حصې) پور وصولولو لپاره په هغوی باندې زبردستی اوكړی.

**تشریح:** علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه د صلح جائز كيدلو يوه حيله داده.كومه چې پورته ذكر شوه.دويمه حيله داده.چه وارث مصالح ته د هغه د برخې (حصې) پور د خپل اړخه د احسان په طور اداكړی. دغه دواړه هم صلح جائز وی.د تبرع مطلب دادې.چه دې نې د قرضدارانو نه واپس نشی اخستلې. دغه دول به د حكم نه بغير شوې ده.خو په دې دواړو حيلوكې د پاته وارثانو نقصان دې.خكه كه د صلح كونكې نه نې قرضه معاف كړله.نو پاته وارثان به د قرضدارانو نه نشی وصولولې.او په دوهم صورت كې چې هركله پاته



وارثانو د خپل اړخه نقد وركړو.او ددې په مقابله كې پور واخستلو.نو ددې ضرر ښكاره دې. لِأَنَّ النَّقْدَ خَيْرٌ مِنَ الدَّيْنِ نو ښه حيله داده.چه صلح كونكې ته دده د برخې (حصې) په اندازه پور وركړی.او ددې برخې (حصې) نه علاوه پاته تركه باندې صلح اوكړی.بيا مصالح پاته وارثان قرضدارانو نه دخپلې برخې (حصې) پور وصولولو لپاره زبردستی اوكړی.

وَلَوْ لَمْ يَكُنْ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ اوكه په تركه كې دين نه وی. وَأَعْيَانُهَا غَيْرُ مَعْلُوْمَةٍ او ددې اعيان غيرمعلوم وی. وَالصُّلْحُ عَلَى الْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ، او صلح په كيلی يا وزنی شئ باندې وی. قِيْلَ لَا يَجُوْزُ لِاحْتِمَالِ الرِّبَا، نو ونيلی شوی دی.چه صلح جائز نه ده.د سود د احتمال په وجه،

**تشریح:** او كه په تركه كې قرضه نه وی.بلكه واړه مال عين وی.خو ددې اعيان معلوم نه وی.او يو وارث د خپلې برخې (حصې) د اړخه په كيلی څيز( غنم، اوربشې وغيره) يا وزنی څيز( اوسپنه، پيتل وغيره) باندې صلح اوكړی.نودا جائز ده. اوكه نه؟ په دې اره كې د مشائخو اختلاف دې.ظهيرالدين مرغينانی فرمائی.چه جائز نه ده.خكه چې د سود احتمال موجود دې.خكه چې هركله تركه كې مثلاً غنم دی. (چه په دې كې د مصالح برخه هم ده).او بدل صلح هم غنم مقرر شوی دی.نو ضروری ده.چه د صلح غنم دده د تركې د برخې (حصې) نه زيات وی.خكه چې برابری شرط دې.خودا احتمال هم شته.چه دا كم وی.نو سود به وی.

وَقِيْلَ يَجُوْزُ او ونيلی شوی دی.چه جائز ده. لِأَنَّهٗ شُبْهَةُ الشُّبْهَةِ،خكه چې دا شبهة الشبهه ده.

**تشریح:** او فقيه ابو جعفر هندوانی رحمه الله فرمائی.چه جائز ده.( په خانيه كې هم دې ته صحيح ونيلی شوی دی ).وجه داده.چه د سود احتمال شبهة الشبهه ده.حالانكه معتبر شبه ده.شبهة الشبه معتبر نه وی.ددې وضاحت داده.چه په ذكر شوی صورت كې روميې خودا احتمال دې.چه كوم عوض مقرر دې.هم ددې جنس كيلی يا وزنی شئ تركه كې وی. دوهم دا احتمال دې.چه دا مقدار د عوض نه زيات يا برابر وی.نو هلته به سود وی.معلومه شوه.چه د سود لزوم د احتمال په احتمال دې.چه دا غير معتبر دې.

وَلَوْ كَانَتِ التَّرِكَةُ غَيْرَ الْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ اوكه تركه كيلی يا وزنی نه علاوه وی. لٰكِنَّهَا أَعْيَانٌ غَيْرُ مَعْلُوْمَةٍ او ددې اعيان نا معلوم وی. قِيْلَ لَا يَجُوْزُ و ونيلی شوی دی.چه صلح جائز نه ده. لِكَوْنِهٖ بَيْعًا خكه چې دا صلح بيع ده. إِذِ الْمُصَالَحُ عَنْهُ عَيْنٌ خكه چې مصالح عنه مال عين دې. وَالْأَصَحُّ أَنَّهٗ يَجُوْزُ خو اصح داده.چه جائز ده. لِأَنَّهَا لَا تُفْضِيْ إِلَى الْمُنَازَعَةِ خكه چې دا جګړې پورې نه رسوی. لِقِيَامِ الْمُصَالَحِ عَنْهُ فِيْ يَدِ الْبَقِيَّةِ مِنَ الْوَرَثَةِ، د پاته وارثانو په قبضه كې د مصالح عنه موجود كيدلو په وجه،

**تشریح:** او كه دا معلومه وی.چه تركه كې كيلی يا وزنی شئ نشته.خو كوم شيان چې موجود دی.د هغې تفصيل معلوم نه دې.بيا هم ونيلی شوی دی.چه صلح جائز نه ده.(د امام شافعی رحمه الله د مذهب د قياس تقاضا هم دا ده).خكه چې كوم شئ سره صلح واقع شوې ده.هغه مجهول دې.او چونكه دا صلح بيع ده.اود مجهول بيع جائز نه ده.نو صلح به هم جائز نه وی.خواصح داده.چه صلح جائز ده. (امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې).خكه چې مضر هغه جهالت دې.په كوم سره چې جګړې ته خبره اورسی.او دلته داسې نه ده.خكه چې كومو څيزونو سره صلح واقع شوې ده.هغه د پاته وارثانو په قبضه كې ده.

وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ مُسْتَغْرِقٌ كه مړی باندې دومره قرضه وی.چه پوره تركه راگيره وی. لَا يَجُوْزُ الصُّلْحُ نو نه صلح جائز ده. وَلَا الْقِسْمَةُ او نه ويش ( جائز دې). لِأَنَّ التَّرِكَةَ لَمْ يَتَمَلَّكْهَا الْوَارِثُ، خكه چې وارث د تركې مالك نه دې جوړ شوې. وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُسْتَغْرِقًا او كه راگيرونكې قرضه نه وی. لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يُصَالِحُوْا مَا لَمْ يَقْضُوْا دَيْنَهٗ فَتُقَدَّمُ حَاجَةُ الْمَيِّتِ، نو مناسب نه ده.چه هغه صلح اوكړی.چه تركومه پورې د مړی قرضه ادا نكړی.د مړی اړخ مقدم كيدلو په وجه، وَلَوْ فَعَلُوْا او كه صلح ئې اوكړله. قَالُوْا يَجُوْزُ. نو مشائخو ونيلی دی.چه جائز ده. وَذَكَرَ الْكَرْخِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ فِي الْقِسْمَةِ او د ويش په اره كې امام كرخی رحمه الله ذكر كړی دی. أَنَّهَا لَا تَجُوْزُ اسْتِحْسَانًا چې دا استحساناً جائز نه

دي. وَتَجُوزُ قِيَاسًا قياساً جائز دي.

تشریح: که د مړي په ترکه باندې قرضه راګیره وي. نو نه یو وارث سره دده په حصې صلح جائز ده. او نه په وارثانو کي ویش جائز دی. (په یوه وجه کي امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې). ځکه چې ترکه د وارث په ملکیت کي نه دي راغلي. اوکه دین محیط نه وي. نو وارثانو ته د یو وراث سره صلح کول ښکار نه دی. ترڅو پورې چې د مړي قرضه ادا نکړي. ځکه چې د مړي اړتیا ورانديې دي. او که صلح ئې اوکړله. نود متاخرینو مشائخو په نیز جائز ده. پاتې شو تقسیم، نودا قیاساً جائزدي. او استحساناً ناجائز دي.

# کتاب المضاربة

ژباړه: (دا) کتاب د مضاربت (په بیان کي) دي.

تشریح: چونکه مضاربت د مصالحت پشان دې. په دې حیثیت چې دې کي هم بدل د یو اړخه وي. د دې امله د مصالحت نه روسته د مضاربت احکام بیانوي.

**معنی المضاربة لغة وشرعاً** ۞ مضاربت په لغت کي د ،،ضرب فی الارض،، نه مفاعله ده. معنی ئې ده. په مځکه ګرځیدل. او ګشت کول. دې عقد ته مضاربت ځکه وائی. چه مضارب د نفع حاصلولو لپاره په اکثره مځکه ګرځی، او پخپل سعی او کوښښ سره د نفع مستحق کیږي. اهل حجاز دې ته مقارضه او قراض هم وائی. ځکه چې د پور معنی قطع (پریکول) ده. او صاحب مال خپل څه مال کټ کوی. او مضارب ته ئې ورکوی.

**د مضاربت لغوي او اصطلاحي معني، او شرعي حکم**

الْمُضَارَبَةُ مُشْتَقَّةٌ مِنَ الضَّرْبِ فِي الْأَرْضِ، مضاربت د ضرب فی الارض نه مشتق دې. سُمِّيَ بِهَا دا نوم په دې وجه کیخودلې شو. لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَسْتَحِقُّ الرِّبْحَ بِسَعْيِهِ وَعَمَلِهِ، چې مضارب پخپله سعي او کوښښ سره د نفع مستحق کیږي. وَهِيَ مَشْرُوعَةٌ اودا مشروع ده. لِلْحَاجَةِ إِلَيْهَا، ددې د اړتیا په وجه، فَإِنَّ النَّاسَ بَيْنَ غَنِيٍّ بِالْمَالِ ځکه چې بعض خلګ په مال سره غني (مالداره) وي. غَبِيٍّ عَنِ التَّصَرُّفِ فِيهِ، (خو) په دې کي د تصرف بې رانې (نا قابله) وي. وَبَيْنَ مُهْتَدٍ فِي التَّصَرُّفِ صِفْرِ الْيَدِ عَنْهُ، او بعض خلګ په تصرف کي لائق اود مال نه خالي لاس وي. فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَى شَرْعِ هَذَا النَّوْعِ مِنَ التَّصَرُّفِ نو ددې دول تصرف مشروع کیدلو اړتیا واقع شو. لِيَنْتَظِمَ مَصْلَحَةُ الْغَبِيِّ وَالذَّكِيِّ وَالْفَقِيرِ وَالْغَنِيِّ. چې د عقلمند او بې وقوف، او د توانګر او غریب مصلحتونه منظم شي.

تشریح: د مضاربت جواز ځکه دی. چه خلقو ته ددې ضرورت هم دې. ځکه چې بعض خلق مالداره وي. خو پخپله کاروبار نشی کولې. او بعض بښه تکړه سوداګر وي. خود مال نه خالي وي. نود عقد مضاربت مشروعیت ضروری دي. چه د بې وقوف او عقلمند، اود فقیر او توانګر د ټولو ضرورت پوره شي.

وَبُعِثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او نبی کریم ﷺ مبعوث شو. وَالنَّاسُ يَتَعَامَلُونَهُ په داسې حال کي چې خلګو به دا معامله کوله. فَقَرَّرَهُمْ عَلَيْهِ نو هغوی ﷺ دوی هم په دې باندې قائم اوساتل. وَتَعَامَلَتْ بِهِ الصَّحَابَةُ، او صحابه کرامو رضی الله عنهم هم په دې باندې عمل اوکړو.

تشریح: او په دې وجه هم چې د نبی کریم ﷺ د بعثت نه روسته به خلګو دا معامله کوله. او نبی کریم ﷺ منع او نه فرمائیله. او حضرت عمر، ابن عمر، ابو موسی اشعری، ابن مسعود، عباس بن عبدالمطلب، حکیم بن حزام، جابر بن عبدالله رضی الله عنهم او نورو صحابه هم په دې باندې عمل کونکی وو. او هیڅ چا ددې انکار نه دی کړی.

ثُمَّ الْمَدْفُوعُ إِلَى الْمُضَارِبِ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ بیا مضارب ته چې کوم مال ورکړې شو. هغه دده په قبضه کي امانت دې. لِأَنَّهُ قَبَضَهُ بِأَمْرِ مَالِكِهِ، ځکه چې هغه دمالك په حکم سره قبضه کړې ده. لَا عَلَى وَجْهِ الْبَدَلِ وَالْوَثِيقَةِ، د عوض او وثیقه (اعتماد) کیدلو طریقې نه بغیر. وَهُوَ وَكِيلٌ فِيهِ او دې په دې کي وکیل دې. لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِيهِ بِأَمْرِ مَالِكِهِ،



ځکه چې دې د مالك په حکم سره تصرف کوی. وَإِذَا رَبِحَ او هرکله چې دې نفع حاصله کړي. فَهُوَ شَرِيكٌ فِيهِ نو شریك وي. لِتَمَلُّكِهِ جُزْءًا مِنَ الْمَالِ بِعَمَلِهِ، ځکه چې دې دخپل کار په وجه دمال د یوې برخې (حصې) مالك شو. فَإِذَا فَسَدَتْ او هرکله چې مضاربت فاسد شي. ظَهَرَتِ الْإِجَارَةُ نو اجاره ښکاره کیږي. حَتَّى اسْتَوْجَبَ الْعَامِلُ أَجْرَ مِثْلِهِ تردې چې عامل د خپل کار دمثل اجر مستحق وي.

تشریح: مضارب چې کوم مال اخلی. هغې کي دې د تصرف نه وړاندې امین وي. ځکه چې دې دمالك په اجازت سره بلا مبادله او اقرار نامې مال باندې قابض وي. نوکه مال هلاك شي. نو مضارب باندې به تاوان نه وي. اود عمل کاوه نه روسته وکیل وي. ځکه چې دې د رب المال په حکم سره تصرف کوي. نو کومه ذمه داری چې په ده لاحق کیږي. نو هغه په رب المال هم لاحق کیږي. او نفع حاصلیدلو نه روسته شریکه وي. ځکه چې دې د خپل عمل په ذریعه د مال د جزء مالك شو. او کله چې په څه وجه مضاربت فاسد شي. نود اجیر په مرتبه کي وي. چه هغه ته د هغه د محنت مزدوری ملاویږي. که په تجارت کي نفع وي. اوکه نه وي.

وَإِذَا خَالَفَ اوکه مضارب خلاف اوکړل. كَانَ غَاصِبًا نو غاصب به وي. لِوُجُودِ التَّعَدِّي مِنْهُ عَلَى مَالِ غَيْرِهِ دده د اړخه تعدی موندلو په وجه. د غیر په مال باندې.

تشریح: او که مضارب د رب المال د حکم خلاف اوکړل. مثلاً د داسې شئ اخستل یا خرڅول ئې اوکړل. دکوم نه چې رب المال منع کړې وو. نو دې به غاصب وي. ځکه چې دغیر په مال کي تعدی (ظلم) اوموندې شو. نو په مضارب به ضمان لازم وي. ائمه ثلاثه او اکثر اهل علم هم ددې قائل دی. د حضرت علی رضی الله عنه نه نقل دی. چه د ربح شریك باندې به ضمان نه وي. حضرت حسن بصری او امام زهری رحمهما الله هم ددې قائل دی.

**د مضاربت تعریف**

قَالَ (الْمُضَارَبَةُ عَقْدٌ) مضاربت داسې عقد دې. (عَلَى الشَّرِكَةِ بِمَالٍ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ) چې دا د یو اړخه مال سره شرکت باندې واقع کیږي. وَمُرَادُهُ الشَّرِكَةُ فِي الرِّبْحِ او مراد د نفع شرکت دې. وَهُوَ يُسْتَحَقُّ بِالْمَالِ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ (وَالْعَمَلِ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ)* او نفع د یو اړخه مال اود دوهم اړخه کار کیدلو سره مستحق کیږي. وَلَا مُضَارَبَةَ بِدُونِهَا، او ددې شرکت نه بغیر مضاربت نه کیږي. أَلَا تَرَى آیا نه ګورې، أَنَّ الرِّبْحَ لَوْ شُرِطَ كُلُّهُ لِرَبِّ الْمَالِ که پوره نفع رب المال لپاره شرط وي. كَانَ بِضَاعَةً، نو دا به بضاعت وي. وَلَوْ شُرِطَ جَمِيعُهُ لِلْمُضَارِبِ اوکه ټوله نفع مضارب لپاره شرط وي. كَانَ قَرْضًا. نو دا به پور وي.

تشریح: په اصطلاح د شرع کي مضاربت هغه عقد ته وائی. په کوم چې د یو د اړخه مال وي. اود دوهم د اړخه عمل وي. او په نفع کي دواړه شریك وي. د چا د اړخه چې مال وي. هغه ته رب المال اود چا د اړخه چې عمل وي. هغه ته مضارب وائی. او کوم مال چې ورکړې شي. هغې ته مال مضاربت وائی. د ذکر شوی صورت نه بغیر مضاربت نه کیږي. تردې که د پوره نفع شرط د رب المال لپاره وي. نو مضارب به مستبضع وي. (بضاعت کونکې) یعنی عقد مضاربت به نه پاتې کیږي. بلکه عقد بضاعت به وي. او مضارب به د رب المال په حق کي محسن شمارلې کیږي. اوکه کل نفع مضارب لپاره شرط وي. نو دا به مست پور وي. ګویا دده د رب المال نه مال د پور په طور اخستې دي.

قَالَ (وَلَا تَصِحُّ إِلَّا بِالْمَالِ الَّذِي تَصِحُّ بِهِ الشَّرِكَةُ) او مضاربت نه صحیح کیږي. خو په هغه مال سره په کوم سره چې شرکت صحیح کیږي. وَقَدْ تَقَدَّمَ بَيَانُهُ مِنْ قَبْلُ، دکوم بیان چې وړاندې تیر شو.

تشریح: مضاربت دهغه مال نه صحیح کیږي. په کوم سره چې شرکت صحیح کیږي. اودا د شیخینو رحمهما الله په نیز دادې. چه راس المال دراهمو او دنانیر وي. د امام محمد او اشهب مالکی رحمهما الله په نیز رائج فلوس سره هم صحیح دې. ددې نه ماسوا سره جائز نه دې. ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی. بلکه ذخیره کي په دې

باندې د اجماع صراحت دی.شیخ سغناقی رحمه الله لیکلی دی،چه عروض او اسباب ( سامان) زموږ په نیز د راس المال کیدلو قابل نه دي.په خلاف د امام مالك رحمه الله ،دغه ډول کیلی او وزنی شیان دی.په خلاف د ابن ابی لیلی ، خود شیخ کاکی رحمه الله په قول د مالکیه په کتابونو کې عروض نه عدم جواز معلومیږی.بلکه په جواهر مالکیه کې تردې پورې لیکلی شوی دی. «انه لا یجوز بالنقرة التی لیست مضروبة إذا كان التعامل بالمسكوك»

وَلَوْدَفَعَ إِلَيْهِ عَرَضًا که مضارب ته ئې اسباب ورکړل.وَقَالَ بِعْهُ او وې وئیل چه دا خرڅ کړه.وَاعْمَلْ مُضَارَبَةً فِي ثَمَنِهِ او ددې ثمن باندې مضاربت کوه.جَازَ لَهُ نو جائز ده.لِأَنَّهُ يَقْبَلُ الْإِضَافَةَ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ تَوْكِيلٌ وَإِجَارَةٌ ځکه چې دا اضافت قبلوی.په دې حیثیت سره چې دا توکیل او اجاره ده.فَلَا مَانِعَ مِنَ الصِّحَّةِ،نود صحت نه هیڅ مانع نشته.وَكَذَا إِذَا قَالَ لَهُ دغه ډول که وې وئیل.اقْبِضْ مَالِي عَلَى فُلَانٍ چې زما کوم مال په فلانی باندې دی.وصول کړه.وَاعْمَلْ بِهِ مُضَارَبَةً او مضاربت کوه.جَازَ لِمَا قُلْنَا،نو جائز دی.بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لَهُ په خلاف ددې کله چې دا اووانی.اعْمَلْ بِالدَّيْنِ الَّذِي فِي ذِمَّتِكَ چې زما کوم پور ستا په ذمه دې.هغې باندې کار کوه.حَيْثُ لَا تَصِحُّ الْمُضَارَبَةُ،نودا مضاربت به صحیح نه وی.لِأَنَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا يَصِحُّ هَذَا التَّوْكِيلُ ځکه چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دا توکیل صحیح نه دې.عَلَى مَا مَرَّ فِي الْبُيُوعِ. لکه څنګه چې کتاب البیوع کې تیر شو.وَعِنْدَهُمَا يَصِحُّ اود صاحبینو رحمهما الله په نیز صحیح دې.لَكِنْ يَقَعُ الْمِلْكُ فِي الْمُشْتَرَى لِلْآمِرِ خو ملکیت به اخستې شوی شئ کې آمر لپاره واقع کیږی.فَيَصِيرُ مُضَارَبَةً بِالْعَرَضِ نو مضاربت به بالعرض ګرځیږی.

تشریح: دا خبره پورته معلومه شوه.چه د شیخینو رحمهما الله په نیز د دراهمو او دنانیرو نه علاوه اسباب وغیره کې مضاربت صحیح نه دې.ددې مطلب هم دادې.که یوکس سره صرف اسباب وی.او هغه مضاربت کول غواړی.نو ددې هیڅ صورت نشته.علامه مرغینانی رحمه الله ددې حیله ذکر کوی.فرمائی.که څوك اسبابو سره مضاربت کول غواړی.نو ددې د جواز صورت دادې.چه یوکس ته اسباب ورکړی.اودا اووائی.چه دا خرڅ کړه.اوکوم رقم حاصل شی.هغې سره مضاربت کوه.په دې طریقه به مضاربت صحیح وی.وجه داده.چه مضاربت د توکیل او اجاره کیدلو په حیثیت سره راروانې زمانې اړخ ته اضافت قبلوی.چه ددې تشریح صاحب د نهایه او عنایه وغیره د هدایې شارحینو داسې کړې ده.چه عقد مضاربت په وکالت او اجاره باندې مشتمل وی.اوپه وکالت او اجاره کې هر یو راروانې زمانې اړخ ته اضافت قبلوی.نو کوم عقد چې دې دواړو باندې مشتمل دې.( یعنی مضاربت) هغه به هم قابل اضافت وی.چه کل مخالف د جزء نشی.د اضافت توکیل الی المستقبل صورت دادې.که څوك دا اووائی.چه ما ته صباله ورځ د خپل دې غلام خرڅولو وکیل جوړ کړې.نو دې صباله ورځ او ددې نه روسته د خرڅولو وکیل جوړیږی.( د سهار راتلو نه وړاندې دخرڅولو وکیل نه جوړیږی ).اود اضافت اجاره صورت دادې.چه داسې اووائی. «اجرتك داری غدا» نود سهار ورځ راتلو نه روسته به اجاره منعقد کیږی.( د سهار راتلو نه وړاندې به نه منعقد کیږی ).

خودا تعلیل په یو څو وجو مشکوك دې.① رومبی: په دې وجه چې دلته مدعا په ذکر شوی صورت کې د عقد مضاربت صحیح کیدل دی.او مضاربت صحیحه په اجاره باندې نه مشتمل کیږی.بلکه ددې منافی وی.② دوهم په دې وجه چې د کُل د عدم مخالفت لزوم ممنوع دې.ځکه دا خبره قطعی طور باندې معلومه ده.چه کُل په ډیرو احکامو کې د خپلو خارجی اجزاؤ اود عقلی اجزاؤ خلاف وی.لکه اوګوره،چه واحد د اثنین جزء دې.حالاکه رومبې فرد دې.زوج نه دې.او دوهم زوج دې.فرد نه دې.ددې نه علاوه په مضاربت، وکالت،او اجاره کې ډیرو احکامو کې مخالفت متحقق دې.مثلاً وکیل نه د ربح ( نفع) مستحق وی.او نه په دې کې مؤکل سره شریك وی.حالاتکه مضاربت کې دا دواړه خبرې موجود وی.دغه ډول اجیر د اجرت مستحق وی.د ربح ( نفع) مستحق نه وی.او مضارب ددې په عکس دې.③ دریم ځکه چې وکالت او اجاره کې د مضاربت د جزء کیدلو احتمال نشته.په وکالت کې په دې وجه چې دا په اتفاق د فقهاؤ د مضاربت په احکامو کې یو حکم دې.اود شی حکم د شی نه خارج او په دې باندې مرتب وی.رکن نه وی.پاتې شوه



اجاره،نودا هم د بعضو په نیز د مضاربت د احکامو څخه یو حکم دې.

نود تعلیل غوره وضاحت د صاحب د کافی دې.چه په ذکر شوی صورت کې ده مضاربت اسبابو اړخ ته نه دې مضاف کړې.بلکه ددې ثمن اړخ ته ئې مضاف کړې دې.او په ثمن سره د مضاربت په صحت کې هیڅ اشکال نشته.پاتې شو اضافت الی المستقبل، نو هغه په دې وجه جائز دې.چه مضاربت وکالت یا ودیعت یا اجاره ده.او په دې کې یوهم د اضافت د صحت نه مانع نه دې.

## د مضاربت شرطونه

قَالَ (وَمِنْ شَرْطِهَا) د مضاربت د شرطونو نه دا هم دې.أَنْ يَكُونَ الرِّبْحُ بَيْنَهُمَا مُشَاعًا چې نفع په دې دواړو کې مشترك وی.لَا يَسْتَحِقُّ أَحَدُهُمَا دَرَاهِمَ مُسَمَّاةً مِنَ الرِّبْحِ چې په دوی کې هیڅ څوك د نفع متعین دراهمو مستحق نه وی.لِأَنَّ شَرْطَ ذَلِكَ يَقْطَعُ الشَّرِكَةَ بَيْنَهُمَا ځکه چې دا شرط کول قاطع د شرکت دې.وَلَا بُدَّ مِنْهَا حالاتکه شرکت ضروری دې.كَمَا فِي عَقْدِ الشَّرِكَةِ. لکه څنګه چې عقد شرکت کې کیږی.

تشریح: د مضاربت د صحت لپاره د دواړو په منځ کې د نفع عام او شائع کیدل.مثلاً نیم په نیمه یا دریمه برخه کیدل شرط دی.مطلب دادې.چه په دوی کې یوکس لپاره په نفع کې د معلومو دراهمو استحقاق پکار نه دی.ځکه چې په داسې شرط سره ددوی په منځ کې شرکت ختمیږی. حالاتکه د شرکت کیدل ضروری دی.

قَالَ (فَإِنْ شَرَطَ زِيَادَةَ عَشَرَةٍ) نو که دلس درهمو زیاتی شرط ئې اوکړو.(فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ) نو مضارب لپاره به اجر مثل وی.لِفَسَادِهِ مضاربت د فساد په وجه.فَلَعَلَّهُ لَا يَرْبَحُ إِلَّا هَذَا الْقَدْرَ ځکه ممکن ده.چه نفع هم په دومره وی.فَتَنْقَطِعُ الشَّرِكَةُ فِي الرِّبْحِ،نو نفع کې به شرکت منقطع شی.وَهَذَا لِأَنَّهُ ابْتَغَى عَنْ مَنَافِعِهِ عِوَضًا اودا ځکه چې مضارب د خپلې نفع عوض اوغوښتلو.وَلَمْ يَنَلْ لِفَسَادِهِ،او هغې ئې د عقد د فساد په وجه او نه موندلو.وَالرِّبْحُ لِرَبِّ الْمَالِ او پوره نفع به د رب المال وی.لِأَنَّهُ نَمَاءُ مِلْكِهِ،ځکه چې دا هم دده دمالیت میوه ده.وَهَذَا هُوَ الْحُكْمُ فِي كُلِّ مَوْضِعٍ لَمْ تَصِحَّ الْمُضَارَبَةُ او هم دا حکم دې.هر هغه ځائې کې ،کوم ځائې چې مضاربت صحیح نه وی.

تشریح: نوکه مضارب یا رب المال خپل ځان لپاره د متعین مقدار یا دلس درهمو زیاتو شرط اولګولو.نو عقد به فاسد وی.ځکه ممکن ده.چه ددې مقدار نه زیاته نفع حاصل نشی.نو نفع کې به شرکت منقطع شی.اوهرکله چې عقد فاسد شو.نو اوس به مضارب ته دده د محنت مزدوری ملاویږی.ځکه چې ده د خپلو منافعو عوض غوښتلې وو.کوم چې د عقد د فساد په وجه اونه موندلې شو.نو ده ته به مزدوری ورکولې شی.او پوره نفع به د رب المال وی.ځکه چې دا دده دملکیت ثمره ده.

تنبیه: د هدایې عامو شارحینو روستنی: مسئله یعنی ،،فإن شرط زيادة ،،د رومبې: مسئلې یعنی د،، و من شرطها ان يكون الربح ،، تفسیر ګرځولې دې.خودا ځکه صحیح نه ده.چه رومبې: مسئله کومه چې د مختصر القدوری ده.هغه د دویمې مسئلې ( کومه چې د جامع صغیر ده) نه عامه ده.ځکه چې یوکس لپاره د متعین دراهمو مشروط کیدل په متعدد ( ډیرو) صورتونو کې جاری کیدای شی.کوم چې د فتاوو په معتبرو کتابونو بدائع، ذخیره وغیره کې ذکر دی.مثلاً① دا شرط لګول،چه د نفعې نه سل درهم یا ددې نه کم او زیات به د یو لپاره وی.او پاتې به د بل لپاره وی.② یو لپاره به د نفع نصف یا ثلث وی.خو لس درهمه به کم وی.③ یو لپاره به د نفع نصف یا ثلث وی.خو لس درهمه به زیات وی.

په دې ټولو صورتونو کې به مضاربت فاسد وی.ځکه چې داسې قسمه شرطونه شرکت ختموی.په خلاف د لس درهمو د زیاتی شرط کوم چې جامع صغیر کې ذکر دې.چه دا په ذکرشوی صورتونو کې صرف دریم صورت کې چلیدې شی.نود جامع صغیر مسئله اخص شوه.چه دا د اعم تفسیر نشی کیدې.ددې نه علاوه د رومبې: مسئلې حکم فساد د عقد دې.او د دویمې مسئلې حکم د اجرت مثل وجوب دې.نو احد المتخالفین دوهم لپاره تفسیر څنګه کیدای شی ؟ نو غوره هم دا ده.چه فاء د تفریع لپاره اومنلې شی.اودا اووئیلې

شي.چه د رومبۍ مسئلې مقصد د عقد مضاربت فساد بيانول دی.او د دويمې مسئلې مقصد د اجرمثل وجوب بيانول دی. ﴿فكأنه قال إذا عرفت فساد عقد المضاربة بالشرط المذكور فاعلم أن حكمة وجوب أجر المثل﴾ (نتائج)

وَلَا يُجَاوِزُ بِالْأَجْرِ الْقَدْرَ الْمَشْرُوطَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ(١) او اجرمثل به د مشروع مقدار نه نه زياتيږي.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز، خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ كَمَا بَيَّنَّا فِي الشَّرِكَةِ په خلاف د امام محمد رحمه الله ،لکه څنګه چې موږ بيان کړی دی.په كتاب الشركت كې،

تشريح: د عقد د فساد په صورت كې اجرتِ مثل ملاوېږي.خو کوم مقدار چې مشروط وو.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به ددې مقدار نه زياته مزدوري نشي ورکولې.د اجارهٔ فاسده حکم هم دادې.چه ددې اجرت د مشروط مقدار نه زيات نه وي.د امام محمد او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به پوره مزدوري ورکولې شي.اګرچه د مشروط نه زياته وي.

وَيَجِبُ الْأَجْرُ او اجرت به واجب وي.وَإِنْ لَمْ يَرْبَحْ فِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ اګرچه نفع نې ګټلې وي.د مبسوط په روايت كې.لِأَنَّ أَجْرَ الْأَجِيرِ يَجِبُ بِتَسْلِيمِ الْمَنَافِعِ أَوِ الْعَمَلِ ځکه چې د اجير اجرت واجبيږي.په منافعو يا کار سپارلو سره، وَقَدْ وُجِدَ. اودا اوموندلې شو.وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ اود امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ لَا يَجِبُ اعْتِبَارًا بِالْمُضَارَبَةِ الصَّحِيحَةِ مَعَ أَنَّهَا فَوْقَهَا، چې اجرت به واجب نه وي.په قياس د صحيح مضاربت، باوجود ددې چې صحيح د فاسد نه زيات دې.

تشريح: بيا د اصل يعنې د مبسوط روايت مطابق به مضاربتِ فاسده كې اجرت واجب وي.اګرچه مضارب نفع نه وي حاصل کړې.امام شافعي رحمه الله او په يو قول كې امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې.ځکه چې هرکله اجيرخاص خپل منافع او اجيرمشترك خپل کار اوسپارې.نو ددې اجرت واجبيږي.د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه د مضاربتِ صحيحه د قياس د مطابق دلته به هم اجرت واجب نه وي.حالانکه مضاربتِ صحيحه خو د مضاربتِ فاسده نه زيات دې.نو هرکله چې د نفع نه کېدلو په صورت كې مضاربتِ صحيحه كې هيڅ نه ملاوېږي.نو مضاربتِ فاسده کې به په طريقه اُولی نه ملاوېږي.

وَالْمَالُ فِي الْمُضَارَبَةِ الْفَاسِدَةِ غَيْرُ مَضْمُونٍ بِالْهَلَاكِ او مضاربتِ فاسده كې مال مضمون نه وي. هلاکيدلو سره، اعْتِبَارًا بِالصَّحِيحَةِ، په قياس د مضاربتِ صحيحه، وَلِأَنَّهُ عَيْنٌ مُسْتَأْجَرَةٌ فِي يَدِهِ، او ځکه چې مال خو دده په قبضه كې اجاره باندې د اخستې شوی څيزونو څنې دې.

تشريح: په مضاربتِ فاسده کې چې کوم مال د مضارب په قبضه کې دې.که هغه ضائع شي.نود هغې ضامن به نه وي.ائمه ثلاثه هم ددې قائل دی.ځکه چې مضاربتِ صحيحه كې هم دا حکم دې.او په دې وجه هم چې دا مال خو دده په قبضه كې اجاره باندې اخستې شوې شئ دې.يعنی دې امين دې.خو مبسوط كې د امام محمد رحمه الله نه د ابن سماعه روايت دې.چه هغه به ضامن وي.او بعضو دا هم وئيلی دی.چه دلته كې کوم عدم ضمان ذکر دې.دا د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به ضامن وي.کله چې دا په داسې سبب سره ضائع وي.چه هغې نه بچکيدل ممکن وي.،، و هذا قول الطحاوی،،

وَكُلُّ شَرْطٍ يُوجِبُ جَهَالَةً فِي الرِّبْحِ او هرهغه شئ چې هغه په نفع كې جهالت پيدا کړي. يُفْسِدُهُ لِاخْتِلَالِ مَقْصُودِهِ هغه مفسد د مضاربت دې. مقصود کې دخلل پريوتلو په وجه. وَغَيْرُ ذَلِكَ مِنَ الشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او ددې نه علاوه شروط فاسده دی. لَا يُفْسِدُهَا، هغه مضاربت نه فاسده وي. وَيَبْطُلُ الشَّرْطُ بلکه پخپله شرط باطل وي. كَاشْتِرَاطِ الْوَضِيعَةِ عَلَى الْمُضَارِبِ لکه مضارب باندې د کمی (او نقصان) شرط لګول.

(١) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في مجمع الأنهر (٤٤٥/٣) وردالمحتار (٥٣٩/٤) والبحر الرائق (٢٦٣/٧) والدرالمنتقى (٤٤٥/٣) وشرح المجلة (٢٠٨/٢)



تشريح: د شروطِ مضاربت قاعده کليه داده.که په عقد مضاربت کې د نفع د جهالت موجب شرط اولګولې شو.مثلاً رب المال مضارب ته په د ترديد په طريقه اووئيل چه ستا لپاره نصف نفع ده.يا ثلث ده.يا نې شرط اولګولو.کوم چې قاطع د شرکت وي.مثلاً يوکس لپاره د متعين دراهمو شرط لګول.نو په داسې شرطونو سره عقد مضاربت فاسديږي.ځکه چې مضاربت کې نفع معقود عليه وي.او جهالت د معقود عليه مفسد د عقد وي.که يو داسې شرط اولګولې شو.کوم چې موجب د جهالتِ نفع، يا د شرکت د قطع موجب نه وي.لکه مضارب باندې د کمی او نقصان شرط لګول.نو په داسې شرط سره عقد نه فاسديږي.بلکه پخپله دا شرط باطليږي.لکه څنګه چې د وکالت او عقد هبه شرطِ فاسد سره نه فاسديږي.

سوال: په دې کليه باندې دا اعتراض کيږي.چه راروان قول ﴿و شرط العمل علی رب المال مفسد للعقد﴾ سره ماتيږي.ځکه چې دا شرط هم ددې قاعدې لاندې داخل دې.حالانکه دا د نفع د جهالت موجب نه دې.ددې باوجود مفسد د عقد دې؟

جواب: ① ددې ځواب دادې.چه آؤ خبره هم دغه ده.خو په ﴿و غير ذالك من الشروط الفاسدة﴾ سره مراد هغه شرط دې.کوم چې موجب عقد نه مانع نه وي.او که شرط داسې وي.کوم چې موجب عقد نه مانع وي.نو هغه به هم مفسد عقد وي.ځکه چې د عقد مشروعيت د موجب عقد اثبات لپاره دې.دا ځواب د صاحب نهايه دې.

② صاحب د عنايه دا ځواب ورکړې دې. علامه مرغيناني رحمه الله دا فرمائيلی دی.چه ﴿وغير ذالك من الشروط الفاسدة لا يفسدها﴾ او هرکله چې رب المال باندې د عمل شرط اولګولې شو.نو بيا خودا مضاربت پاتې نشو.اودا خبره منلې شوې ده.چه د معدوم نه د څه شئ سلب کول جائز دی.نودا وئيل صحيح دی. ﴿زيد المعدوم ليس يبصر و قوله بعد هذا و شرط العمل على رب المال مفسد العقد معناه مانع عن تحققه﴾

## د مضاربت بعض نور شرطونه

قَالَ (وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمَالُ مُسَلَّمًا إِلَى الْمُضَارِبِ) او ضروري ده.چه مال مضارب ته اوسپارلې شي. (وَلَا يَدَ لِرَبِّ الْمَالِ فِيهِ) چې په دې کې د مالك قبضه نه وي.لِأَنَّ الْمَالَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځکه چې مال دده په قبضه کې امانت دې.فَلَا بُدَّ مِنَ التَّسْلِيمِ إِلَيْهِ، نو ددې سپارل ضروري دی.

تشريح: د مضاربت د صحت لپاره دا هم ضروري ده.چه مضارب ته راس المال پوره طور باندې اوسپارلې شي.اود رب المال په دې کې هيڅ قسمه قبضه د تصرف نه وي.ځکه چې مال د مضارب په قبضه کې امانت وي.نو لکه څنګه چې مال د وديعت مودع ته حواله کول ضروري دی.دغه شان مضارب ته راس المال سپارل ضروري دی.

وَهَذَا بِخِلَافِ الشَّرِكَةِ اودا د شرکت خلاف دې.لِأَنَّ الْمَالَ فِي الْمُضَارَبَةِ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ وَالْعَمَلَ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ، ځکه چې مضاربت کې د يو اړخه مال او د بل اړخه کار وي.فَلَا بُدَّ مِنْ أَنْ يَخْلُصَ الْمَالُ لِلْعَامِلِ لِيَتَمَكَّنَ مِنَ التَّصَرُّفِ فِيهِ. نود مال خالص کيدل عامل لپاره ضروري دی.چه هغه په دې کې تصرف اوکړې شي. أَمَّا الْعَمَلُ فِي الشَّرِكَةِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ پاتې شو عمل په شرکت کې ،نودا د دواړو طرفونو نه کيږي.فَلَوْ شُرِطَ خُلُوصُ الْيَدِ لِأَحَدِهِمَا نو که خالص د يو کس قبضه شرط وي.لَمْ تَنْعَقِدِ الشَّرِكَةُ،نو شرکت به منعقد کيږي.

تشريح: ذکر شوې حکم د شرکت خلاف دې.يعنی د شرکت په صورت کې مال صرف يو د يو شريك په قبضه کې ورکول شرط نه دی.وجه داده.چه مضاربت کې د رب المال د اړخه مال وي.اود مضارب د اړخه کار وي.او مضارب به کار هغه وخت کوي.کله چې د بل کس دخل اندازئ (تصرف) نه بغير مال دده په قبضه کې وي.پاتې شو شرکت،نو په دې کې کار د دواړو اړخه وي.اوس که په شرکت کې يواځې د يوکس قبضه شرط وي.نو د سره به شرکت نه منعقد کيږي.يعنی د غيرقابض د اړخه به د شرکت کار ممکن نه وي.

وَشَرْطُ الْعَمَلِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ مُفْسِدٌ او رب المال باندې د عمل شرط مفسد د عقد دې. لِلْعَقْدِ لِأَنَّهُ يَمْنَعُ خُلُوصَ يَدِ

الْمُضَارِبِ خكه چې دا د مضارب خالص قبضې نه مانع دي. فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنَ التَّصَرُّفِ نو هغه به تصرف باندې قابو نه مومي. فَلَا يَتَحَقَّقُ الْمَقْصُودُ سَوَاءٌ كَانَ الْمَالِكُ عَاقِدًا أَوْ غَيْرَ عَاقِدٍ او مقصود به نه حاصليږي. كه مالك عاقد وي. اوكه غير عاقد وي. كَالصَّغِيرِ لكه بچې، لِأَنَّ يَدَ الْمَالِكِ ثَابِتَةٌ لَهُ، خكه چې مال باندې به د مالك قبضه ثابته وي. وَبَقَاءُ يَدِهِ يَمْنَعُ التَّسْلِيمَ إِلَى الْمُضَارِبِ، او دده د قبضې پاته پاتې كيدل مضارب ته د سپارلو نه مانع دی. وَكَذَا أَحَدُ الْمُتَفَاوِضَيْنِ وَأَحَدُ شَرِيكَيِ الْعِنَانِ إِذَا دَفَعَ الْمَالَ مُضَارَبَةً دغه ډول كه د شركت مفاوضه او شركت عنان يو شريك مال مضاربت باندې وركړو. وَشَرَطَ عَمَلَ صَاحِبِهِ لِقِيَامِ الْمِلْكِ لَهُ او د خپل انډيوالان د كار شرط ئې اوكړو. دده د ملك قائميدلو په وجه وَإِنْ لَمْ يَكُنْ عَاقِدًا، اګرچه دا عاقد نه دې.

**تشريح:** اوكه مضاربت كې كه د رب المال په ذمه كار شرط وي. نو عقد به فاسد وي. خكه چې دې شرط سره د مضارب قبضه خالص نه پاتې كيږي. نو دې په تصرف باندې قابو نشي موندلې. نود مضاربت چې كوم مقصد دې هغه به نه حاصليږي. كه رب المال عاقد وي. او كه عاقد نه وي. لكه مثلاً د يو ماشوم مال مضاربت باندې وركړې شو. نو دده قبضه لرې كيدل هم پكار دی. ګنې مقصود به نه حاصليږي. خكه چې مال باندې به د مال قبضه ثابته وي. او دده د قبضې پاته پاتې كيدل، د مضارب په قبضه كې سپارلو نه منع كوي. نو مضاربت به فاسديږي. دغه ډول كه شركت مفاوضه يا د شركت عنان يو شريك يو سړې ته مضاربت باندې مال وركړو. او مضارب سره ئې د خپل انډيوالان كار كول شرط كړل. بيا به هم مضاربت فاسد وي. خكه چې مال باندې به د انډيوالان قبضه پاته وي. اګرچه ده عقد مضاربت نه دې كړې.

فائده۞ قاضي عاصم عامري د فقيه محمد بن ابراهيم ضرير نه نقل كړې دی. كه رب المال خپل خان لپاره دا شرط اولګولو. چه زه كله اوغواړم. مال كې به جلا تصرف كوم. او كله چې مضارب ته ددې موقع ملاويږي. نو خانله هغه به تصرف كوي. نو په دې شرط سره به مضاربت نه فاسديږي. جائز به وي. رب المال لپاره د عمل شرط د عقد مفسد كيدل، هغه وخت دی. كله چې پوره عمل دده لپاره شرط وي. چه په دې صورت كې به مال مضارب ته نه سپارلې شوې نه وي. ( ذخيره)

وَاشْتِرَاطُ الْعَمَلِ عَلَى الْعَاقِدِ مَعَ الْمُضَارِبِ اود عمل شرط لګول عاقد باندې مضارب سره، وَهُوَ غَيْرُ مَالِكٍ حالانكه هغه مالك نه دې يُفْسِدُهُ مفسد د عقد دې. إِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الْمُضَارَبَةِ فِيهِ په دې شرط چې دا د اهل مضاربت خنې نه وي. په دې مال كې، كَالْمَأْذُونِ، بِخِلَافِ الْأَبِ وَالْوَصِيِّ لكه عبد ماذون په خلاف د پلار او وصي، لِأَنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ أَنْ يَأْخُذَا مَالَ الصَّغِيرِ مُضَارَبَةً بِأَنْفُسِهِمَا خكه چې دوی پخپله د صغير مال مضاربت باندې اخستې شي. فَكَذَا اشْتِرَاطُهُ عَلَيْهِمَا بِجُزْءٍ مِنَ الْمَالِ نو هم دغه ډول دوی باندې د مال د جزء په عوض د كار شرط كول هم صحيح دی.

**تشريح:** يوسړې كوم چې عاقد دې. اود مال مالك نه دې. هغه مضارب سره د خپل كار كاوه شرط اوكړو. نو ددې دوې (دوه) صورتونه دی. مذكوره عاقد به په دې مال كې د اهل مضاربت خنې وی. يا به نه وی. كه دې د اهل مضاربت خنې وی. لكه پلار، يا وصي. د بچي مال مضاربت باندې وركړو. او مضارب سره ئې د خپل كار كاوه شرط اولګولو. نو جائز دې. اوكه د اهل مضاربت خنې نه وی. لكه عبد ماذون چې ده ته مالك د تجارت كاوه اجازت وركړې وی. ده خپل مال مضاربت باندې وركړو. مضارب سره ئې دخپل كار كاوه شرط اولګولو. نودا فاسد دې. وجه داده. چه عبد ماذون اګرچه د مال مالك دې. خو په دې مال كې دده د تصرف قبضه ثابته ده. او دده قبضه چونكه خپله ذاتي قبضه ده. نو دده هبه به ( په هغه امورو كې كوم چې تصرف ته راجع دی ) د مالك د قبضې په مرتبه كې ساتلې شي. او دده د صحت قبضه به مضاربت لپاره مانع وی. په خلاف د پلار او وصي، كه دوی د صغير مال مضاربت باندې وركړو. اود خپل كار كاوه شرط ئې اولګولو. چه ده ته هم د نفع برخه ملاوشي. نودا جائز ده. خكه چې پلار او وصي پخپله د بچي مال خپل خان لپاره



مضاربت باندې اخستې شي. نو هم دغه ډول د يو جزء او نفع په عوض دوی باندې د كار كاوه شرط هم صحيح دې. خكه هرهغه مال په كوم كې چې سړې يواخې مضارب كيداې شي. هغې كې غير سره هم مضارب كيداې شي. ﴿و هذا لأن تصرفهما واقع للصغير حكما بطريق النيابة فصار دفعهما كدفع الصغير و شرطهما كشرط فتشترط التخلية من قبل الصغير لأنه رب المال و قد تحققت﴾ ( كفايه)

## د مضاربت بعض نور شرطونه

قَالَ (وَإِذَا صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ مُطْلَقَةً كله چې مضاربت مطلق اوساتلې شي. جَازَ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَبِيعَ وَيَشْتَرِيَ نو جائز دی، مضارب لپاره اخستل او خرخول، وَيُوَكِّلَ او وكيل كول، وَيُسَافِرَ() سفر كول، وَيُبْضِعَ بضاعت باندې وركول، وَيُودِعَ) لِإِطْلَاقِ الْعَقْدِ وديعت ( امانت) ايخودل، د عقد د اطلاق په وجه. وَالْمَقْصُودُ مِنْهُ الِاسْتِرْبَاحُ او مقصود ددې نه نفع حاصلول دی. وَلَا يَتَحَصَّلُ إِلَّا بِالتِّجَارَةِ، چې دا نه ملاويږي. مګر په تجارت سره فَيَنْتَظِمُ الْعَقْدُ صُنُوفَ التِّجَارَةِ نودا عقد به د تجارت ټولو اقسامو ته ګډ وی. وَمَا هُوَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ، او هغې ته هم كوم چې د تجارت د طريقو خنې دی. وَالتَّوْكِيلُ مِنْ صَنِيعِهِمْ، او وكيل كول د تجارت د طريقې خنې دی. وَكَذَا الْإِبْضَاعُ وَالْإِيدَاعُ وَالْمُسَافَرَةُ ادغه ډول وديعت ايخودل، بضاعت باندې وركول، او سفر كول، أَلَا تَرَى آيا نه ګورې أَنَّ الْمُودَعَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ چې مودع ته سفر كې د اوړلو اختيار دې. فَالْمُضَارِبُ أَوْلَى، نو مضارب ته به په طريقه اولى دا اختيار وی. كَيْفَ وَأَنَّ اللَّفْظَ دَلِيلٌ عَلَيْهِ او ولې به نه وی. حالانكه لفظ پخپله ددې دليل دې. لِأَنَّهَا مُشْتَقَّةٌ مِنَ الضَّرْبِ فِي الْأَرْضِ خكه چې مضاربت د ضرب فى الارض نه مشتق دې. وَهُوَ السَّيْرُ. او دا سير او سفر كول دی.

**تشريح:** ددې خائې نه د هغه امورو بيان دې. كوم چې مضارب لپاره جائز يا ناجائز دی. نوكه عقد مضاربت يو مكان يا زمان ( يو خائې يا يو مودې) پورې او يو خاص تصرف سره مقيد نه وی. بلكه مطلق وی. نو مضارب لپاره هغه واړه امور جائز دی. كوم چې د تاجرانو ( او سوداګرو) رواج ( او عادت) وی. لكه لاس په لاس، يا په پور اخستل خرخول ( د آئمه ثلاثه په نيز بې اجازته پور نشي خرخولې)، وكيل كول، سفر كول، د بضاعت په طريقه مال وركول، بل چا سره مال وديعت ايخودل، ګانړه اخستل، ګانړه ايخودل، كرايه باندې اخستل، كرايه باندې وركول وغيره. خكه چې دا واړه امور د سوداګرو په نيز عام عادت دې. اود تاجرانو په سلسله كې ددې ضرورت واقع كيږي. اود مضاربت مقصد هم دادې. چه نفع حاصل شي. اودا تجارت نه بغير نه كيږي. نو مذكوره عقد به د تجارت ټولو اقسامو ته شامل وی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ لَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ چې مضارب لپاره مال اخستل او سفر كول جائز نه دی. وَعَنْهُ وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمهما الله او امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت كړې دې. أَنَّهُ إِنْ دَفَعَ فِي بَلَدِهِ كه مالك د مضارب په ښار كې مال وركړې وی. لَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ نو ده لپاره جائز نه دی. چه ( مال واخلی او) سفر اوكړی. لِأَنَّهُ تَعْرِيضٌ عَلَى الْهَلَاكِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ خكه چې دا بې ضرورته ضائع كاوه باندې پيش كول دی. وَإِنْ دَفَعَ فِي غَيْرِ بَلَدِهِ او كه دده د ښار نه علاوه كې ئې وركړې وی. لَهُ أَنْ يُسَافِرَ إِلَى بَلَدِهِ نو ده لپاره خپل ښار اړخ ته سفر كول جائز دی. لِأَنَّهُ هُوَ الْمُرَادُ فِي الْغَالِبِ، خكه چې غالب مراد هم دا وی. وَالظَّاهِرُ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ او ښكاره هم هغه دې. كوم چې كتاب كې ذكر دی.

**تشريح:** د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. چه مضارب لپاره مال اخستل او سفر كول جائز نه دی. يعنى هغه مال كوم كې چې بار ( بوج) اوړل، او خرچه ( كرايه وغيره) راخي. ﴿بناءً على قوله فى الوديعة﴾ ( مبسوط) اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. كه مالك مضارب ته مال د هغه په ښار كې وركړې وی. نو هغه له په سفر كې د

---

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى العناية (٤٢٢\٧) والخانية (٢٢٠\١٤) وكنز (٢٩٨) والدرالمنتقى (٤٧١\٣) وبدائع الصنائع (١٣٤\٦) نقلاً عن القول الراجح (٢٠٩\٢)_

اورلو اختیار نشته.خو ظاهرالروایة هم هغه دي.کوم چې په کتاب کي ذکر شوې دي.چه على الاطلاق د سفر اجازت دي.

## د مضارب لپاره بل کس ته مضاربت باندي د مال ورکولو حکم

قَالَ (وَلَا يُضَارِبُ) او په مضاربت به نه ورکوی. إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ رَبُّ الْمَالِ مګر دا چي اجازت ورکړی.هغه ته مالك، أَوْيَقُولَ لَهُ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ) یا اووائی.چه د خپلي رائي مطابق کام کوه.لِأَنَّ الشَّيْءَ لَا يَتَضَمَّنُ مِثْلَهُ.ځکه چي شيء خپل مثل ته نه متضمن کیږی.لِتَسَاوِيهِمَا فِي الْقُوَّةِ.قوت کي ددې دواړو برابر کیدلو په وجه فَلَا بُدَّ مِنَ التَّنْصِيصِ عَلَيْهِ أَوِالتَّفْوِيضِ الْمُطْلَقِ إِلَيْهِ.نو تصریح یا مطلق سپارل ضروري دی.وَكَانَ كَالتَّوْكِيلِ،اودا د توکیل پشان شو.فَإِنَّ الْوَكِيلَ لَا يَمْلِكُ أَنْ يُوَكِّلَ غَيْرَهُ چي وکیل په هغه کار کي بل څوك نشي وکیل کولی.د کوم لپاره چي دې وکیل جوړشوې دي.إِلَّا إِذَا قِيلَ لَهُ.خوکله چي ده ته وئیلی شوی وی.اعْمَلْ بِرَأْيِكَ، چي خپلي رائي سره کار کوه.بِخِلَافِ الْإِيدَاعِ وَالْإِبْضَاعِ.په خلاف د ودیعت ایخودلو، او په بضاعت ورکولو، لِأَنَّهُ دُونَهُ.ځکه چي دا د مضاربت نه کم دی. فَيَتَضَمَّنُهُ، نو هغه به دې ته ګډ نه وی.

**تشریح:** مضارب ته دا اختیار نشته.چه بل کس ته مضاربت باندې مال ورکړی. مګردا چي د رب المال د اړخه ددې صریحی اجازت وی.یا دې پخپلې رائې سره د کار کاوه اختیار مند وی.وجه داده.چه دواړه مضاربتونه قوت کي برابر دی.او شيء خپل مثل ته متضمن نه وی.نو د ړومبي مضاربت په ضمن کي به دوهم مضاربت نه راځي.

سوال: يو مستعير، مستعار شيء بل کس ته عاریت باندي،مستاجر بل کس ته اجاره باندي ورکولی شی.او عبد مکاتب خپل غلام مکاتب کولې شی.او عبد ماذون خپل غلام ته اجازت ورکولې شی.حالانکه دا واړه په قوت کي د يو بل مثل دی ؟

ځواب: دلته خبره هغه تصرف کي ده.کوم چي د نیابت په طور وی.او ذکرشوی تصرفات د مالیت په حکم سره دی.د نیابت په حکم سره نه دی.ځکه چي مستعیر د منفعت مالك، او مکاتب د قبضې په لحاظ سره آزاد شو.په خلاف د مضارب، چي هغه د نیابت په طریقه عمل کوی.ځکه چي مضاربت کي د وکالت معنی وی.او وکیل چي د کوم کار لپاره وی.هغې کي دوهم کس نشي وکیل کولې.دغه ډول مضارب بل کس نشي مضارب کولې.په خلاف د ودیعت ایخودلو،یا د بضاعت ورکولو،چه دا جائز دی.ځکه چي دوی کي هر یو د مضاربت نه کم دي.نو هغه به دې ته ګډ وی.

وَبِخِلَافِ الْإِقْرَاضِ او په خلاف د پور ورکولو، حَيْثُ لَا يَمْلِكُهُ. چي ددې اختیار هم نشته.وَإِنْ قِيلَ لَهُ اګرچه ده ته وئیلی شوی وی.اعْمَلْ بِرَأْيِكَ چي خپلي رائې سره کار کوه.لِأَنَّ الْمُرَادَ مِنْهُ التَّعْمِيمُ فِيمَا هُوَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ.ځکه چي دې سره هم هغه امورو کي عموم مراد وی.کوم چي د تجارت د طریقي څني وی.وَلَيْسَ الْإِقْرَاضُ مِنْهُ او پور ورکول ددې نه نه دې.وَهُوَ تَبَرُّعٌ كَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ.دا خو د هر تحفي او صدقي پشان احسان دې.فَلَا يَحْصُلُ بِهِ الْغَرَضُ.نو په دې سره به غرض نه حاصلیږی.وَهُوَالرِّبْحُ.اودا نفع ده.لِأَنَّهُ لَا تَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَيْهِ،ځکه چي پور باندي څه زیاتول جائز نه دی.أَمَّا الدَّفْعُ مُضَارَبَةً.پاتې شو مضاربت باندې ورکول، فَمِنْ صَنِيعِهِمْ.نودا د تاجرانو د طریقي څني دې.وَكَذَا الشَّرِكَةُ وَالْخَلْطُ بِمَالِ نَفْسِهِ.دغه ډول شرکت او خپل مال کي ملاوول دی.فَيَدْخُلُ تَحْتَ هَذَا الْقَوْلِ. چي دا به هم ددې قول لاندې داخل وی.

**تشریح:** په خلاف د پور ورکولو،چه مضارب ته ددې اختیار هم نشته.اګر چي مالك دا وئیلی وی.چه خپلې رائې سره کارکوه.ځکه چي دې سره صرف هغه امورو کي تعمیم مراد دې.کوم چي د تاجرانو د طریقې څني وی.او پور ورکول د تاجرانو د طریقې څني نه دي.بلکه دا خو د هبې او صدقي پشان يو احسان دې.اود پور [illegible] زیات اخستل جائز نه دی.



قَالَ (وَإِنْ خَصَّ لَهُ رَبُّ الْمَالِ التَّصَرُّفَ فِي بَلَدٍ بِعَيْنِهِ) که تخصیص اوکړو.مالك د تصرف،په يو خاص ښار (أَوْفِي سِلْعَةٍ بِعَيْنِهَا) یا متعین اسبابو کي، (لَمْ يَجُزْلَهُ أَنْ يَتَجَاوَزَهَا) نو مضارب ته ددې نه تجاوز کول جائز نه دی.لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ.ځکه چي دا توکیل دې.وَفِي التَّخْصِيصِ فَائِدَةٌ او په تخصیص کي فائده هم ده.فَيَتَخَصَّصُ.نو تخصیص به کیږی.وَكَذَا لَيْسَ لَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ بِضَاعَةً إِلَى مَنْ يُخْرِجُهَا مِنْ تِلْكَ الْبَلْدَةِ.دغه ډول داسې سړی ته بضاعت نشي ورکولې.کوم چي دا ددې ښار نه بهر یوځی.لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْإِخْرَاجَ بِنَفْسِهِ.ځکه چي مضارب ته پخپله بهر ته اوړلو اختیار نشته. فَلَا يَمْلِكُ تَفْوِيضَهُ إِلَى غَيْرِهِ.نو بل چا ته به هم ددې تفویض (او سپارل) نشي کولې.

**تشریح:** که رب المال د تجارت لپاره يو خاص ښار یا يو خاص اسباب (سامان) متعین کړو.نو مضارب لپاره ددې خلاف کول جائز نه دی.ځکه چي مضارب کوم چي مال کي د تصرف کاوه مالك کیږی.هغه د رب المال په سپارلو سره کیږی.او رب المال سپارل دې ذکر شوی امورو سره خاص کړی دی.چه دا د فائدې نه خالی نه دی.ځکه چي تجارت په اختلاف د ځایونو او سامانونو سره مختلف وی.په دې وجه مضارب ته ددې سپارلو خلاف کول جائز نه وی.امام شافعي ﷫ فرمائی.که رب المال ددې څیزونو تعین اوکړو. نو د سره به مضاربت صحیح نه وی.

## د رب المال د متعین ښار نه بل ښار ته د راس المال اوړولو حکم

قَالَ (فَإِنْ خَرَجَ إِلَى غَيْرِ ذَلِكَ الْبَلَدِ) نو که او وتلو ددې ښار نه علاوه اړخ ته. (فَاشْتَرَى) او څه ئې واخستل، (ضَمِنَ) نو ضامن به وی.وَكَانَ ذَلِكَ لَهُ.* او اخستل به هم دده لپاره وی.وَلَهُ رِبْحُهُ او نفع به هم دده وی.لِأَنَّهُ تَصَرَّفَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ ځکه چي دا تصرف د مالك د حکم نه بغیر دې.وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِ او که هیڅ ئې وانخستل .حَتَّى رَدَّهُ إِلَى الْكُوفَةِ تردې چي مال ئې کوفې ته واپس راوړلو.وَهِيَ الَّتِي عَيَّنَهَا او هم دا هغه ښار دې.کوم چي مالك وئیلې وو. بَرِئَ مِنَ الضَّمَانِ.نود ضمان څخه به بری وی. كَالْمُودَعِ إِذَا خَالَفَ فِي الْوَدِيعَةِ.لکه چي مودَع په ودیعت کي مخالفت اوکړی. ثُمَّ تَرَكَ.بیا خلاف پریږدی.وَرَجَعَ الْمَالُ مُضَارَبَةً عَلَى حَالِهِ لِبَقَائِهِ فِي يَدِهِ بِالْعَقْدِ السَّابِقِ،او مال به بیا مضاربت باندې وی.د مخکنی عقد په ذریعه،دده په قبضه کي د پاته پاتې کیدلو په وجه.وَكَذَا إِذَا رَدَّ بَعْضَهُ دغه ډول که ده څه مال واپس راوړلو.وَاشْتَرَى بِبَعْضِهِ فِي الْمِصْرِ او په پاته سره ئې څه اخستی وو.كَانَ الْمَرْدُودُ وَالْمُشْتَرَى فِي الْمِصْرِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ لِمَا قُلْنَا نو واپس راوړلې شوې،او ښار کي اخستلی شوی دواړه به مضاربت باندې وی.

**تشریح:** رب المال مضارب لپاره د يو خاص ښار مثلاً د کوفې تخصیق کړې وو.مضارب د هغه ځائې نه بل يو ښار ته یوړلو.او په دې ئې بل څه شيء واخستلو.نو دې به د راس المال ضامن وی.او اخستې شوې شيء به سره د نفع دده وی.ځکه چي دده دا تصرف د مالك د حکم خلاف دې.او که ده لا تر اوسه هیڅ نه وو اخستی.چه مال ئې هم هغه متعین ځائې ته راوړلو.نو د تاوان څخه به بری وی. لکه که مودع د مودع خلاف اوکړی.او بیا د مخالفت نه واپس منع شی.نو د مخالفت په وجه چي کوم ضمان راغلې وو. د هغې نه بری کیږی.او کوم مال چي مضارب سره دې.هغه د مخکي پشان پخپل حال مضاربت باندې پاته وی.ځکه چي د مخکنی عقد په وجه هغه تر اوسه پورې دده په قبضه کي پاته دې.

## په دې مسئله کښې د جامع صغیر او مبسوط اختلاف روایات

ثُمَّ شَرَطَ الشِّرَاءَ بِهَا هَاهُنَا بیا ئې شرط کړی دی.دلته کي اخستل، وَهُوَرِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ،او دا روایت دې.د جامع صغیر، وَفِي كِتَابِ الْمُضَارَبَةِ ضَمَّنَهُ بِنَفْسِ الْإِخْرَاجِ.او په کتاب المضاربه کي ئې ضامن جوړ کړې دې.بهر ته اوړلو سره، وَالصَّحِيحُ أَنَّ بِالشِّرَاءِ يَتَقَرَّرُ الضَّمَانُ لِزَوَالِ احْتِمَالِ الرَّدِّ إِلَى الْمِصْرِ الَّذِي عَيَّنَهُ،او صحیح داده.چه اخستلو سره ضمان مضبوطیږی.دې ښار اړخ ته د واپس راوړلو احتمال ختمیدلو په وجه.کوم ئې چي متعین کړې وو.أَمَّا

الضَّمَانُ پاتې شو ضمان، فَوُجُوبُهُ بِنَفْسِ الْإِخْرَاجِ،نو ددې وجوب بهر ته په اوړلو سره دې. وَإِنَّمَا شَرَطَ الشِّرَاءَ لِلتَّقَرُّرِ لَا لِأَصْلِ الْوُجُوبِ،اود اخستلو شرط تقرر لپاره دې.د اصل وجوب لپاره نه دې.

**تشريح:** د جامع صغيراو د مبسوط د رواياتو اختلاف بيانوي.چه دلته جامع صغير كې ئې شراء شرط كړې ده.يعنى د مال د اخراج په صورت كې به مضارب باندې ضمان هغه وخت وى.كله چې دې متعين كړې شوى ښار نه مال بل ښار ته يوځى.او په دې سره څه واخلى.اود مبسوط په كتاب المضاربت كې دى.چه په نفس اوښكلو سره ضامن وى.كه په دې سره څه واخلى.اوكه وانخلى.ددې په ښكاره اختلاف معلوم شو.حالانكه داسې نه ده.لكه چې علامه مرغينانى رحمه الله كوم تحقيق ذكر كړې دې.ددې لنډيز هم داده.چه د اخستلو شرط صرف د ضمان ثابتولو لپاره دې.د اصل ضمان واجبيدلو لپاره نه دې.نود مال مالك چې كوم ښار متعين كړې وو.كله چې مضارب ددې نه بهر مال يوړلو.نو ضامن به وى.لكه څنګه چې د مبسوط په كتاب المضاربت كې دى.خو ضمان لا تراوسه ثابت نه دې.تركومه پورې چې بل ښار كې اخستل اونكړى.تردې كه د څه اخستلو نه بغير واپس راوړى.نود ضمان څخه به برى وى.اوكه څه ئې واخستل.نو ضمان ثابت شو.لكه څنګه چې جامع صغير كې دى.اودا داسې ده.لكه نكاح سره د مهر وجوب، كه د وطى نه وړاندې طلاق وركړى.نو متعه پاتې شوه.او كه وطى اوشوه.نو مهر ثابت شو.

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا اودا ددې خلاف دى. إِذَا قَالَ كله چې اووائى. عَلَى أَنْ يَشْتَرِيَ فِي سُوقِ الْكُوفَةِ چې په دې شرط ئې دركړو.چه ته د كوفې په بازار كې اخستل كوې. حَيْثُ لَا يَصِحُّ التَّقْيِيدُ چې دا قيد لګول صحيح نه دى. لِأَنَّ الْمِصْرَ مَعَ تَبَايُنِ أَطْرَافِهِ كَبُقْعَةٍ وَاحِدَةٍ،ځكه چې ښار د خپلو مختلفو طرفونو باوجود د يو ځائې (حصې) پشان دې. فَلَا يُفِيدُ التَّقْيِيدُ،نو قيد لګول به ګټور نه وى. إِلَّا إِذَا صَرَّحَ بِالنَّهْيِ بِأَنْ قَالَ خو كله چې د ممانعت تصريح اوكړى.او داسې اووائى. اعْمَلْ فِي السُّوقِ چې په بازار كې كار كوه. وَلَا تَعْمَلْ فِي غَيْرِ السُّوقِ د بازار نه علاوه كې كار مه كوه. لِأَنَّهُ صَرَّحَ بِالْحَجْرِ،ځكه چې ده د ممانعت تصريح كړې ده. وَالْوِلَايَةُ إِلَيْهِ،او ولايت هم ده ته دې.

**تشريح:** د متعين ښار د تخصيص كوم حكم چې ذكرشوې دې.دا دهغې خلاف دې.كله چې د مضارب د تصرف لپاره د كوفې وغيره بازار تخصيص اوكړى.چه دا تخصيص صحيح نه دې.ځكه چې ښار د خپلو مختلفو طرفونو باوجود د بقعة واحده (د يوې حصې) په مرتبه كې دې.نو ذكر شوې قيد ګټور نشو.نودا به ګڼړلې شى.چه مالك د مشورې په طور، يا هسې خبرو اترو كې ئې د بازار لفظ ذكر كړو.د غيربازار تصرف نه ئې نه دې منع كړې.البته كه دې صراحت سره دا اووائى.چه ته صرف بازار كې تجارت كوه.ددې نه علاوه كې مه كوه.نودا صريحى قيد به معتبر وى.ځكه چې ده د اختيار نه د ممانعت تصريح اوكړله.اود ممانعت د ولايت حق هم ده ته دې.

سوال: اوس دلته كې دا سوال كيږى.چه ذخيره كې دا مسئله ذكر ده.كه مالك دا اووائى.چه «بع بالنسية و لا تبع بالنقد»، پور خرڅوه،په نغدو مه خرڅوه،،او مضارب په نقد خرڅ كړى.نو دا د صريح ممانعت باوجود مخالف حكم نشى ګرځولې.(كله چې د نقد او پور په نرخ كې هيڅ تفاوت (كمې زياتې) نه وى)؟

ځواب: ددې ځواب په يوه قاعده باندې مبنى دې.او هغه داچه كوم قيد هرلحاظ سره ګټور وى.د هغې به خامخا اعتبار كولې شى.او كوم قيد چې هرلحاظ سره غيرمفيد وى.هغه به لغوه وى.اوكوم قيد چې من وجه مفيد وى.او من وجه غيرمفيد وى.نودا به د صريح نهى په وخت معتبر وى.او كله چې ددې نه سكوت وى.نو لغوه به وى.د رومبى مثال د ښار او سامان تخصيص دې.لكه چې په رومبى كې تير شو.اود دوهم مثال بيع بالنسئه (بيع بالقرض) ده.چه د پور په ځائې نقد باندې خرڅول مفيد دى.نود پور قيد به د مضر كيدلو په وجه لغوه وى.اود دريم مثال بازار سره قيد لګول دى.چه دا په دې حيثيت سره مفيد دې.چه ښار به مختلفو ځايونو باندې مشتمل دې.حقيتاً هم او حكماً هم.حقيقتاً خو ښكاره دې.او حكماً ځكه، كه مودع يوه محله كې د ساتنه شرط اولګوى.نو ددې نه علاوه كې به د ساتنه كاوه اختيار نه وى.( اودا ښكاره



ده.چه په اختلاف د ځايونو سره كله كله نرخ مختلف كيږى ).او په دې لحاظ سره غير مفيد دې.چه ښار د مختلفو طرفونو باوجود د بقعة واحده( يعنى د يوې حصې) په مرتبه كې دې.لكه كه د سلم متعاقدين په ښاره كې دكيدلو شرط اوكړى.او محله بيان نكړى.نوعقد صحيح كيږى.نود نهى د تصريح په وخت به ددې اعتبار وى.اود سكوت په وخت كې به اعتبار نه كيږى.( بنايه)

وَمَعْنَى التَّخْصِيصِ اود تخصيص مطلب دادې. أَنْ يَقُولَ لَهُ عَلَى أَنْ تَعْمَلَ كَذَا أَوْ فِي مَكَانِ كَذَا، چې داسې اووائى.چه د فلانى سامان يا په فلانى مقام كې تجارت كوه.ځكه چې فاء وصل لپاره ده. وَكَذَا إِذَا قَالَ يا ئې اووئيل. خُذْ هٰذَا الْمَالَ تَعْمَلْ بِهِ فِي الْكُوفَةِ مال واخله په نيمه نفع چې كوفې سره يو ځائې وى. لِأَنَّهُ تَفْسِيرٌ لَهُ،ځكه چې باء د الصاق لپاره ده. أَوْ قَالَ فَاعْمَلْ بِهِ فِي الْكُوفَةِ لِأَنَّ الْفَاءَ لِلْوَصْلِ أَوْ قَالَ خُذْهُ بِالنِّصْفِ بِالْكُوفَةِ لِأَنَّ الْبَاءَ لِلْإِلْصَاقِ،

**تشريح:** ددې قول مقصد په مفيد تخصيص،او د غيرمفيد تخصيص الفاظو منځ كې توپير كول دى.نو په دې اړه كې فقهاوٴ اته الفاظه متعين كړى دى.چه دې كې شپږ مفيد د تخصيص دى.او دوې (دوه) غير مفيد د تخصيص دى.مفيد د تخصيص دادى.

«① دفعت إليك المال مضاربةً على أن تعمل به بالكوفة ② دفعت إليك المال مضاربةً تعمل بالكوفة ③ دفعت إليك المال مضاربةً فاعمل به بالكوفة ④ دفعت إليك المال مضاربةً بالنصف على أن تعمل به بالكوفة ⑤ دفعت إليك المال مضاربةً بالنصف تعمل بالكوفة ⑥ دفعت إليك المال مضاربةً بالنصف فاعمل به بالكوفة» او غيرمفيد د تخصيص دادى. «(۱) دفعت إليك المال مضاربةً بالنصف و اعمل بالكوفة (۲) دفعت إليك المال مضاربةً بالنصف إعمل بالكوفة»

ددې قاعده داده.چه كله رب المال د مضاربت نه روسته داسې لفظ ذكر كړى.چه ددې تلفظ په ابتداء كې ناممكن وى.او ددې په ماقبل باندې مبنى كول ممكن وى.نودا به په ماقبل باندې مبنى كولې شى.( چې كلام لغوه نشى ).لكه چې په دغه شپږ الفاظو كې هم دا خبره ده.او هركله چې داسې لفظ ذكركړى.چه په دې سره ابتداء كول ممكن وى.نودا به په ماقبل باندې نشى مبنى كولې.بلكه دې ته به مستقل كلام وئيلې شى.لكه څنګه چې آخرى دوې (دوه) لفظونو كې دى.هركله چې دا قاعده تفصيل سره وړاندې شوه.نو اوس عبارت سره تطبيق وركول ډير آسان دى.

أَمَّا إِذَا قَالَ او كه وې وئيل. خُذْ هٰذَا الْمَالَ چې دا مال واخله. وَاعْمَلْ بِهِ بِالْكُوفَةِ او په دې سره كوفه كې كار كوه. فَلَهُ أَنْ يَعْمَلَ فِيهَا وَفِي غَيْرِهَا نودې په كوفه او غير كوفه كې كار كولې شى. لِأَنَّ الْوَاوَ لِلْعَطْفِ ځكه چې واوٴ عطف لپاره ده. فَيَصِيرُ بِمَنْزِلَةِ الْمَشُورَةِ، نودا د مشورې په درجه كې شو.

**تشريح:** په دې باندې سوال كيږى.چه دا واوٴ حال لپاره ولې وانخستلې شو.لكه څنګه چې په «أد إلي ألفاً و أنت حر» كې واوٴ د حال لپاره ده؟

ځواب: دادې.چه «واعمل به» جمله انشائيه ده.او په عربيه علومو سره دا خبره ثابته ده.چه جمله انشائيه كې د حالت كيدلو صلاحيت نه وى.كه په واوٴ سره وى.اوكه د واوٴ نه بغير وى.

وَلَوْ قَالَ اوكه وې وئيل. عَلَى أَنْ تَشْتَرِيَ مِنْ فُلَانٍ وَتَبِيعَ مِنْهُ په دې شرط چې فلانى نه اخستل خرڅول كوه. صَحَّ التَّقْيِيدُ نو قيد لګول به صحيح وى. لِأَنَّهُ مُفِيدٌ ځكه چې دا مفيد دې. لِزِيَادَةِ الثِّقَةِ بِهِ فِي الْمُعَامَلَةِ، فلانى سره په معامله كې دزيات اعتماد په وجه، بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ په خلاف ددې كله چې اووائى. عَلَى أَنْ تَشْتَرِيَ بِهَا مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ، په دې شرط چې ددې په ذريعه اهل كوفه سره اخستل خرڅول كوه. أَوْ دَفَعَ فِي الصَّرْفِ عَلَى أَنْ يَشْتَرِيَ بِهِ مِنَ الصَّيَارِفَةِ وَيَبِيعَ مِنْهُمْ يا ئې د صرافى توب په تجارت كې مال په دې شرط وركړو.چه صرافيانو سره اخستل خرڅول كوه. فَبَاعَ بِالْكُوفَةِ مِنْ غَيْرِ أَهْلِهَا أَوْ مِنْ غَيْرِ الصَّيَارِفَةِ بيا مضارب په كوفه كې غير اهل كوفه سره يا ئې د صرافيانو نه علاوه سره معامله اوكړله. جَازَ،نودا جائز ده. لِأَنَّ فَائِدَةَ الْأَوَّلِ التَّقْيِيدُ بِالْمَكَانِ، ځكه چې د

رومبی فائده د خاني قيد وَفَائِدَةُ الثَّانِي التَّقْيِيدُ بِالنَّوْعِ، او د دوهم فائده د تجارت د نوع قيد لګول دی. وَهٰذَا هُوَ الْمُرَادُ عُرْفًا عرفاً هم دا مراد وی. لَا فِيمَا وَرَاءَ ذٰلِكَ د دې نه علاوه مراد نه وی.

**تشريح:** که رب المال د تجارتی معاملې لپاره د يو سړی نومونه متعين کړل. نو دا تعين به صحيح وی. چه د فائدې نه خالی نه دی. ځکه چې تجارت د اشخاصو د اختلاف په لحاظ سره مختلف وی. او مالك په معاملاتو کې دې متعين سړی باندې زيات اعتماد کړی دی. نو د دې خلاف کول به جائز نه وی. البته که مالك د نوم د تعين نه بغير داسې اووئيل. چه اهل کوفه سره اخستل خرڅول کوه. يا نې بيع صرف کې اووئيل. چه صرافيانو سره اخستل خرڅول کوه. او مضارب کوفه کې د اهل کوفه يا د صرافيانو نه علاوه سره اخستل خرڅول اوکړل. نو دا به جائز وی. ځکه چې د اول مقصد صرف د کور او خاني تخصيص دې. چه کوفه کې کيدل پکار دی. او د دوهم مقصد د تجارت د نوع تخصيص دې. چه بيع صرف کيدل پکار دی. د وئيلو مقصد دادې. چه په دې سره د اشخاصو تخصيص مقصود نه وی.

### د معين وخت تيريدلو نه روسته د مضاربت حکم

قَالَ (وَكَذٰلِكَ إِنْ وَقَّتَ لِلْمُضَارَبَةِ وَقْتًا بِعَيْنِهِ) دغه ډول که مضاربت لپاره نې محدود وخت متعين کړو. (يَبْطُلُ الْعَقْدُ بِمُضِيِّهِ) نو د دې په تيريدلو سره به عقد باطليږی. لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ ځکه چې دا توکيل دې. فَيَتَوَقَّتُ بِمَا وَقَّتَهُ نو کوم (موده) سره نې چې مؤقت کړې دې. هم هغې پورې به وی. وَالتَّوْقِيتُ مُفِيدٌ او توقيت مفيد هم دې. وَأَنَّهُ تَقْيِيدٌ بِالزَّمَانِ ځکه چې دا د يوې زماني قيد دې. فَصَارَ كَالتَّقْيِيدِ بِالنَّوْعِ وَالْمَكَانِ نو د نوع او د مقام د قيد پشان به وی.

**تشريح:** د ترجمې نه مطلب ښکاره دې

### مضارب لپاره د رب المال د قريبی رشته دار نه د اخستلو حکم

قَالَ (وَلَيْسَ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَشْتَرِيَ مَنْ يَعْتِقُ عَلَى رَبِّ الْمَالِ) او مضارب ته دا اختيار نشته. چه واخلی هغه (غلام) چې آزاد شی. (لِقَرَابَةٍ أَوْ غَيْرِهَا) مالك باندې د قرابت وغيره په وجه. لِأَنَّ الْعَقْدَ وُضِعَ لِتَحْصِيلِ الرِّبْحِ ځکه چې عقد نفع لپاره موضوع شوې دې. وَذٰلِكَ بِالتَّصَرُّفِ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى، او دا به په بار بار تصرف کاوه سره وی. وَلَا يَتَحَقَّقُ فِيهِ لِعِتْقِهِ او دا خبره په دې کې نه متحقق کيږی. د ده د آزاديدلو په وجه.

**تشريح:** که يو غلام د رب المال ذی رحم محرم وی. يا ده قسم خوړلې وی. که زه فلانې غلام واخلم. نو هغه آزاد دې. نو مضارب لپاره داسې غلام اخستل جائز نه دی. ځکه چې د مضاربت عقد د نفع حاصلولو لپاره دې. او نفع حاصلولو هغه وخت کيدای شی. کله چې بار بار تصرف وی. او د ذکر شوی غلام په اخستلو کې دا خبره متصور نه ده. ځکه چې دا رب المال باندې آزاديږی.

وَهٰذَا لَا يَدْخُلُ فِي الْمُضَارَبَةِ شِرَاءُ مَا لَا يُمْلَكُ بِالْقَبْضِ په دې وجه مضاربت کې داسې شی نه داخليږی. کوم چې قبضې سره ملکيت کې رانشی. كَشِرَاءِ الْخَمْرِ لکه د شرابو اخستل، وَالشِّرَاءِ بِالْمَيْتَةِ. او د مردار په عوض د يو شی اخستل، بِخِلَافِ الْبَيْعِ الْفَاسِدِ په خلاف د بيع فاسد. لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ بَيْعُهُ بَعْدَ قَبْضِهِ ځکه چې دا د قبضې نه روسته خرڅولې شی. فَيَتَحَقَّقُ الْمَقْصُودُ. نو مقصود به متحقق کيږی.

**تشريح:** يعنی په دې وجه چې د ذکرشوی اخستلو په صورت کې تصرف ناممکن دې. مضاربت کې د داسې شی اخستل نه داخليږی. کوم چې قبضه سره ملکيت کې رانشی. لکه د شرابو اخستل چې دا د مسلمان په ملکيت کې نه راځی. دغه ډول د مردار په عوض د څه شی اخستل، چه دا بيع باطل ده. تردې چې کوم شی د مردار په عوض اخستې دې. هغه قبضې سره هم ملکيت کې نه راځی. په خلاف د بيع فاسد، چه دا د مضاربت لاندې داخليږی. ځکه چې کوم شی نې د بيع فاسد په طور آخستې دې. دا د قبضې نه روسته خرڅولې شی. نو



نفع حاصلول کوم چې اصل مقصد دې. هغه به حاصله شی.

سوال: که څوك سړی على الاطلاق د زر (درهمو) په عوض د غلام اخستلو وکيل وی. او هغه داسې غلام واخلی. کوم چې مؤکل باندې آزاديږی. نو دا جائز دی. او دا مخالف حکم نشی ګرځولې. د دې څه وجه ده؟

ځواب: وجه دا ده. چه وکالت مطلق دې. او مضاربت داسې شی سره مقيد. دې. کوم چې نافع (او ګټور) وی. تردې که مؤکل اووئيل. «إشتر لي عبداً بألف ايمه» نو آزاديدونکې غلام اخستل به جائز نه وی.

وَلَوْ فَعَلَ که ده داسې اوکړل. صَارَ مُشْتَرِيًا لِنَفْسِهِ نو خپل ځان لپاره به اخستونکې وی. دُونَ الْمُضَارَبَةِ مضاربت لپاره به نه وی. لِأَنَّ الشِّرَاءَ مَتَى وَجَدَ نَفَاذًا عَلَى الْمُشْتَرِي ځکه چې کله اخستل مشتری باندې ثابت شی. نَفَذَ عَلَيْهِ نو په ده باندې نافذ کيږی. كَالْوَكِيلِ بِالشِّرَاءِ إِذَا خَالَفَ لکه د اخستلو وکيل کله چې مخالفت اوکړی.

**تشريح:** که غلام هم دغه ډول غلام واخستلو. کوم چې رب المال باندې آزاديږی. نو دا اخستل به مضاربت باندې نه وی. بلکه دې به خپل ځان لپاره اخستونکې وی. ځکه کوم اخستل چې داسې وی. چه مشتری باندې د هغې نافذ کول ممکن وی. نو هغه مشتری باندې نافذ کيږی. لکه مثلاً وکيل بالشراء که د مؤکل د حکم خلاف اوکړی. نو اخستل به هم په ده باندې نافذ وی.

### د نفع په صورت کښې د رب المال د قريبی رشته دار اخستلو حکم

قَالَ (فَإِنْ كَانَ فِي الْمَالِ رِبْحٌ) که په مال کې نفع وی. (لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ مَنْ يَعْتِقُ عَلَيْهِ) نو مضارب لپاره داسې سړی جائز نه دې. کوم چې ده باندې آزاديږی. لِأَنَّهُ يَعْتِقُ عَلَيْهِ نَصِيبُهُ ځکه چې د ده برخه به آزاده شی. وَيَفْسُدُ نَصِيبُ رَبِّ الْمَالِ أَوْ يَعْتِقُ او د رب المال برخه به فاسد يا آزاده شی. عَلَى الِاخْتِلَافِ الْمَعْرُوفِ بناء په هغه اختلاف کوم چې مشهور دې. فَيَمْتَنِعُ التَّصَرُّفُ نو تصرف به ممتنع وی. فَلَا يَحْصُلُ الْمَقْصُودُ نو مقصود به نه حاصليږی. (وَإِنِ اشْتَرَاهُمْ) او که ده داسې خلګ واخستل. (ضَمِنَ مَالَ الْمُضَارَبَةِ) نو د مال مضاربت به ضامن وی. لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُشْتَرِيًا الْعَبْدَ لِنَفْسِهِ ځکه چې دې د غلام خپل ځان لپاره اخستونکې شو. فَيَضْمَنُ بِالنَّقْدِ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ نو د مضاربت د مال ورکاوه به ضامن وی.

**تشريح:** که په مال کې نفع وی. نو مضارب له داسې غلام اخستل هم جائز نه دی. کوم چې د مضارب د برخه آزاد شی. لکه مثلاً هغه غلام کوم چې د مضارب ذی رحم محرم وی. ځکه چې دې کې د مضارب برخه آزاديږی. او د صاحب مال برخه به يا فاسديږی. (د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز) يا به هغه هم آزاده وی. (د صاحبينو رحمهما الله په نيز) په دې باندې معمولی شان تشريح سره داسې پوهه شه. چه هر کله مال مضاربت کې نفع شريکه ده. نو په دې کې د مضارب هم برخه ده. او هر کله چې ده خپل پلار يا زوی وغيره ذو رحم محرم واخستلو. نو هغه به د ده د ارخه آزاد وی. خو په دومره اندازه څومره چې ده کې د مضارب برخه ده. اوس د صاحبينو رحمهما الله په نيز به پاتې هم ازاده وی. ځکه چې د دوی په نيز اعتاق کې تجزی نه کيږی. يعنی عتق کې ټکړې نه جوړيږی. او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، چونکه عتق قابل تجزی دې. په دې وجه به مالك ته اختيار وی. چه غواړی آزاد دې کړی. او که غواړی. غلام باندې دې مزدوری کوی. او که غواړی. مضارب نه دې تاوان واخلی. (که هغه توانګر وی) بهرحال غلام د دې قابل پاتې نشو. چه خرڅ کړې شی. نو د مالك برخه ضائع شوه. او دا د مضارب د اخستلو په وجه اوشو. نو د ده اخستل به جائز نه وی.

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي الْمَالِ رِبْحٌ او که په مال کې نفع نه وی. جَازَ أَنْ يَشْتَرِيَهُمْ نو د دوی اخستل جائز دی. لِأَنَّهُ لَا مَانِعَ مِنَ التَّصَرُّفِ، ځکه چې د تصرف نه هيڅ مانع نشته. إِذْ لَا شَرِكَةَ لَهُ فِيهِ ځکه چې مال کې د ده هيڅ شرکت نشته، لِيَعْتِقَ عَلَيْهِ تردې چې هغه په ده آزاد شی.

**تشريح:** مذکوره حکم هغه وخت دې. کله چې په مال د مضاربت کې نفع ښکاره نه وی. نو مذکوره غلام مضاربت لپاره اخستل صحيح دی. د نفع ښکاره کيدلو نه مراد دادی. چه د غلام قيمت راس المال نه زيات

وي.ځکه چې هرکله د غلام قیمت د راس المال برابر یا ددې نه کم وي.نو په دې غلام کې به د مضارب ملکیت ښکاره نه وي.بلکه غلام به راس المال سره بوخت وي.نو که راس المال په پیل کې زر درهم وي.بیا لس زره شي.ددې نه روسته مضارب هغه غلام واخلي.کوم چې ده باندې آزادیږي.او دده قیمت زر یا ددې نه کم وي.نو هغه به په ده باندې نه آزادیږي.

(فَإِنْ زَادَتْ قِيمَتُهُمْ بَعْدَ الشِّرَاءِ)بیا که ددوی قیمت د اخستلو نه روسته زیات شي.(عَتَقَ نَصِيبُهُ مِنْهُمْ) لِمِلْكِهِ بَعْضَ قَرِيبِهِ.نو په دوی کې به دمضارب برخه آزاده وي.د خپلو رشته دارانو د بعض د مالك کیدلو په وجه.(وَلَمْ يَضْمَنْ لِرَبِّ الْمَالِ شَيْئًا) او دې به د رب المال لپاره دهیڅ شئ ضامن نه وي.لِأَنَّهُ لَا صُنْعَ مِنْ جِهَتِهِ فِي زِيَادَةِ الْقِيمَةِ ځکه چې دده د اړخه هیڅ حرکت نشته.په قیمت زیاتیدلو کې ،وَلَا فِي مِلْكِهِ الزِّيَادَةَ،اود زیاتیدلو په مالك کیدلو کې ،لِأَنَّ هَذَا شَيْءٌ يَثْبُتُ مِنْ طَرِيقِ الْحُكْمِ ځکه چې دا خو داسې شئ دې.کوم چې د حکم په طریقه ثابتیږي.

**تشریح:** یعنې کوم وخت چې مضارب قرابتدار غلام اخستې وو.هغه وخت دده قیمت د راس المال برابر وو.خو روسته دده قیمت زیات شو.نو د مضاربت د برخې (حصې) په اندازه غلام آزاد وي.ځکه چې دې د خپل قرابت دار مالك شو.خو مضارب باندې به د رب المال د برخې (حصې) ضمان نه وي.ځکه چې د ملکیت په وخت غلام د مضارب په حرکت سره نه دې آزاد شوې.بلکه د مضارب د اختیار نه بغیر د قیمت زیاتیدلو په وجه آزاد شوې دې.نو غلام به د رب المال د برخې (حصې) په قیمت کې سعایت کوي. «لأنـه احتسبت ماليته عنده»

فَصَارَ كَمَا إِذَا وَرِثَهُ مَعَ غَيْرِهِ نو داسې شوه.کله چې دې غیر سره ددې وارث وي.(وَيَسْعَى الْعَبْدُ فِي قِيمَةِ نَصِيبِهِ مِنْهُ) او غلام به رب المال لپاره دده برخې (حصې) په اندازه قیمت کې سعایه (مزدوري) کوي.لِأَنَّهُ احْتُبِسَتْ مَالِيَّتُهُ عِنْدَهُ ځکه چې د رب المال مالیت ددې غلام سره بند شوې دې.فَيَسْعَى فِيهِ نو دې به هغې کې مزدوري کوي.كَمَا فِي الْوَرَثَةِ لکه څنګه چې د وراثت په صورت کې کیږي.

**تشریح:** ددې مسئلې صورت دادې،چه مثلاً د یوې ښځې میړه په تیره شوې زمانه کې د زید وینځې سره نکاح کړې وه.چه د هغې نه یو هلك پیدا شو.او هغه د خپلې مور پشان د زید غلام وو.بیا دې سړي مذکوره آزادې ښځې سره نکاح اوکړله.او دغه ښځې د زید نه د خپل میړه خوئې واخستلو. او هغه دده مالکه شوه.ددې نه روسته د ښځې انتقال اوشو.او هغې خپل میړه او یو رور پریښولو .نو ترکه به دواړو کې نیم په نیمه مشترك وي.نود هلك نیمه برخه د رور په ملکیت کې او نیمه د میړه په ملکیت کې راغلله.خو هلکه چونکه د میړه خوئې دې.په دې وجه هغه په ملکیت کې راتګ و سره فوراً پخپل پلار باندې آزاد شو.اوس به پلار د خپلې ښځې د رور لپاره د هیڅ شئ ضامن نه وي.ځکه چې آزادول دده اختیاري فعل نه دې.بلکه میراث کوم چې خدائي حکم دې.د هغې په وجه ملکیت ثابت شو.او په ملکیت ثابتیدلو سره به دې حکماً آزاد وي.نو پلار په دې دواړو خبرو کې بې قصوره دې.

دغه ډول دلته کې د مضارب حال دې.چه د: خپل محارم د خپل شرکت نه بغیر په دې وجه اخستې وو.چه دا به مالك لپاره خرڅ کړي.خو اچانك دده قیمت زیات شو.( اود قیمت زیاتیدل، د مضارب اختیاري فعل نه دې).او هرکله چې په قیمت زیاتیدلو سره نفع کې دده شرکت پیدا شو.نود شرکت په اندازه ده ته ملکیت حاصل شو.او هم په دې اندازه به برخه آزاده وي.اودا هم دده اختیاري فعل نه دې.او هرکله چې ده داسې څه حرکت نه دې کړې.چه په دې سره د رب المال نقصان وي.نو هغه به ضامن هم نه وي.

حاصل دا چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز رب المال ته دا اختیار حاصل نشو.چه هغه مضارب نه د خپلې برخې (حصې) تاوان واخلي.بلکه هم دا اختیار پاتې شو.که غواړي.نو خپله برخه دې آزاده کړي.اوکه



غواړي.غلام باندې دې مزدوري (کټه) اوکړي.ځکه چې د رب المال مالیت دې غلام سره بند (ګیر) شوې دې.

### د مضاربت وینځې سره د مضارب وطې او ددې په بچي د نسب د دعوه مسئله

قَالَ (فَإِنْ كَانَ مَعَ الْمُضَارِبِ أَلْفٌ بِالنِّصْفِ)مضارب سره دمضاربت بالنصف زردرهم دي (فَاشْتَرَى بِهَا جَارِيَةً قِيمَتُهَا أَلْفٌ)نو ده په دې سره د زر درهمو د قیمت وینځه واخستله.(فَوَطِئَهَا) و دې سره ئې وطې اوکړله.(فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ)نو ددې نه ئې یو بچې پیدا شو.(يُسَاوِي أَلْفًا) چې دا د زر درهمو برابر دې.(فَادَّعَاهُ)نو مضارب دده د نسب دعوه اوکړله.(ثُمَّ بَلَغَتْ قِيمَةُ الْغُلَامِ أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ)بیا د غلام قیمت یو نیم زرو ته اورسیدلو.

**تشریح:** مضارب سره نیم په نیمه منفعت باندې زر درهم وو.ده په هغې سره د زر درهمو د قیمت وینځه واخستله.او هغې سره ئې وطې اوکړله.چه د هغې نه د زر درهمو د قیمت بچې پیدا شو.او مضارب د مالدارۍ په حالت کې ددې بچې د نسب دعوه اوکړله.بیا ددې بچې قیمت یو نیم زر شو.نود مضارب د نسب دعوه به نافذه وي.ځکه چې د نفع ښکاره کیدلو په وجه د مضارب ملکیت او موندلې شو.او هرکله چې د مضارب دعوه نافذ شوه.نو دا بچې دده خوئې شو.نو هغه به د مضارب د برخې (حصې) په اندازه آزاد وي.او مضارب باندې به د رب المال د برخې (حصې) ضمان نه وي.ځکه چې دا آزادي د ملکیت او نسب په وجه ثابت شوې ده.چه دې کې د مضارب فعل ته دخل نشته.البته رب المال ته به اختیار وي.که غواړي.هغه دې په دې بچي د دولس نیم سوه درهمو سعایت (محنت مزدوري) اوکړي.یعنې زر د راس المال په وجه.او دوې (دوه) نیم سوه د نفع په وجه، اوکه غواړي نو آزاد دې کړي.

(وَالْمُدَّعِي مُوسِرٌ)او حال داچه مدعي توانګر دې.(فَإِنْ شَاءَ رَبُّ الْمَالِ)نو که رب المال غواړي.(اسْتَسْعَى الْغُلَامَ فِي أَلْفٍ وَمِائَتَيْنِ وَخَمْسِينَ)،غلام باندې دې د دولس نیم سوه درهمو مزدوري (کټه) اوکړي.(وَإِنْ شَاءَ أَعْتَقَ) اوکه غواړي.ازاد دې کړي.

**تشریح:** ددې قید په اړه کې عامو شارحینو ونیلي دي.چه په دې سره د یوې شبهٔ ازاله مقصود ده.او هغه داچه دلته د ضمان واجبیدل، د مضارب د نسب دعوې په سبب سره دي.کوم چې د بچي په حق کې ضمان اعتاق دې.اود اعتاق ضمان د حالت یسار او اعسار( مالدارۍ، غریبۍ) په لحاظ سره مختلف کیږي.نو مضارب باندې دده د مالداره کیدلو په صورت کې تاوان راتګ پکار دې.ددې باوجود دلته کې دلته مضارب ضامن نشو.ځکه چې دده د اړخه هیڅ حرکت اونه موندې شو.خو صاحب د نتائج لیکلي دي.چه ددې تقریر مطابق د شبې ازاله نه کیږي.بلکه د شبې نور هم تائید کیږي.نود ذکر شوي قید غوره توجیه داده.چه په دې کې ددې خبرې تنبیه مقصود ده.چه مضارب باندې به د ضمان عدم وجوب د غریبۍ په حالت کې په طریقه اولی واجب نه وي.که مذکوره قید نه وو.نو احتمال وو.چه څوك دا په حالت د غریبۍ باندې محمول کړي.

وَوَجْهُ ذَلِكَ ددې وجه داده.أَنَّ الدَّعْوَةَ صَحِيحَةٌ فِي الظَّاهِرِ چې په ښکاره د نسب دعوه صحیح ده.حَمْلًا عَلَى فِرَاشِ النِّكَاحِ،د نکاح په فراش باندې محمول کولو سره.لَكِنَّهُ لَمْ يَنْفُذْ خودا نافذ نشوه.لِفَقْدِ شَرْطِهِ وَهُوَ الْمِلْكُ لِعَدَمِ ظُهُورِ الرِّبْحِ ددې شرط یعنې د ملکیت نه کیدلو په وجه، د نفع نه ښکاره کیدلو په بناء باندې،لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا: أَعْنِي الْأُمَّ وَالْوَلَدَ مُسْتَحَقٌّ بِرَأْسِ الْمَالِ،ځکه چې دوی دواړو کې هر یو، یعنې مور او بچې د راس المال د استحقاق څښتن دي. كَمَالِ الْمُضَارَبَةِ إِذَا صَارَ أَعْيَانًا كُلُّ عَيْنٍ مِنْهَا لکه مال مضاربت چې کله اعیان متعدده شي.يُسَاوِي رَأْسَ الْمَالِ چې په دې کې هر مال عین د راس المال برابر وي.لَا يَظْهَرُ الرِّبْحُ نو نفع نه ښکاره کیږي.كَذَا هَذَا،دغه ډول به دلته کې هم نه ښکاره کیږي.فَإِذَا زَادَتْ قِيمَةُ الْغُلَامِ الْآنَ بیا هرکله چې د غلام قیمت زیات شو.ظَهَرَ الرِّبْحُ نو اوس نفع ښکاره شوه.فَنَفَذَتْ الدَّعْوَةُ السَّابِقَةُ، نو مخکنۍ د نسب دعوه به نافذ کیږي.

**تشریح:** د مذکوره حکم وجه داده.چه په ښکاره د نسب دعوه صحیح ده.په دې طریقه چې فراش په نکاح باندې محمول کړې شي. ﴿بان يزوجها منه بائعها﴾ خود آزادئ په حق کې دا دعوه ځکه نافذ نشوه. چې د آزادئ شرط یعنې ملکیت مفقود (غیرموجود) دې.ځکه چې په نفع نه ښکاره کیدلو سره د مضارب هیڅ ملکیت نشته.ځکه چې بچې خپلې مور سره د راس المال په استحقاق کې دې.لکه څنګه چې په دې صورت کې کیږی.کله چې نقد مال مضاربت د اخستلو وغیره په سبب سره اعیان متعدده شي.او هرمال عین د قیمت په اعتبار سره د راس المال برابر وی.مثلاً راس المال زر درهم وو.ددې په عوض نې دوې (دوه) غلامان واخستل.چه په دوی کې د هر یو قیمت زر، زر درهم دې.نو په دې صورت کې نفع نه ښکاره کیږی.دغه ډول دلته د وینځې او ددې د بچې په وجه هم نفع نه ښکاره کیږی. البته کله چې ددې غلام قیمت د زر درهمه راس المال نه زیات شي.او یو نیم زر شي.نو اوس نفع ښکاره شوه.نود مضارب د دنسب دعوه کومه چې ده وړاندې کړې وه.هغه به اوس نافذ کولې شي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَ الْوَلَدَ په خلاف ددې کله چې بچې آزاد کړی. ثُمَّ ازْدَادَتْ الْقِيمَةُ. بیا قیمت زیات شي. لِأَنَّ ذَلِكَ إِنْشَاءُ الْعِتْقِ ،ځکه چې دا انشاء د عتق ده. فَإِذَا بَطَلَ لِعَدَمِ الْمِلْكِ او هرکله چې دا د ملك نه کیدلو په وجه باطل شو. لَا يَنْفُذُ بَعْدَ ذَلِكَ بِحُدُوثِ الْمِلْكِ ،نو ددې نه روسته به د ملکیت پیدا کیدلو په وجه نه نافذ کیږی. أَمَّا هَذَا فَإِخْبَارٌ نو هغه اخبار دې. فَجَازَ أَنْ يَنْفُذَ عِنْدَ حُدُوثِ الْمِلْكِ نو د ملکیت پیدا کیدلو په وخت نافذ کیداې شي. كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِحُرِّيَّةِ عَبْدِ غَيْرِهِ لکه مثلاً یوکس د غیر د غلام آزادیدلو اقرار اوکړی. ثُمَّ اشْتَرَاهُ ،بیا هغه واخلی.

**تشریح:** یعنې د ذکر شوی نفاذ والا خبره صرف د نسب په دعوه کې ده.اعتاق کې نه ده.لکه که مضارب د نسب د دعوې په ځائې د وړاندې نه دې آزاد کړو.نود قیمت زیاتیدلو نه روسته به دده اعتاق نه نافذ کیږی.ځکه چې آزادول انشاء د عتق ده.یعنی ده عتق پیدا کړو.خو ده خپل محل اونه موندلو.ځکه چې ملکیت نشته.نو باطل شو.اوهرکله چې د ملکیت نه کیدلو په وجه اعتاق باطل شو.نو ددې نه روسته به دملکیت پیدا کیدلو سره نه نافذ کیږی.په خلاف د دعوې د نسب،چه هغه انشاء نه ده.بلکه اخبار دې.یعنی د نسب د دعوې دا مطلب نه دې.چه نسب بالفعل ایجاد دې.بلکه دا ددې خبرې خبر ورکول دی.چه دده نه زما نسب ثابت دې.نودا د حدوث ملك په وخت نافذ کیداې شي. لکه مثلاً یو کس د بل د غلام په اړه کې دا اقرار اوکړی.چه دا آزاد دې.نود ملکیت نه کیدلو په وجه اقرار باطل دې.خو که دې ددې نه روسته غلام واخلی.نو دده په ملکیت پیدا کیدلو سره دده مخکنې اقرار نافذ کیږی.وجه هم داده.چه په تیره شوې زمانه کې کومه خبره ثابته شوه.د هغې خبر ورکول اقرار دې.نو ګویا ده اووئیل.چه په دې غلام کې عتق ثابت شو.خو د غیر په ملکیت باندې دا اقرار نافذ نشو.او ددې نه روسته چې هرکله پخپله دده ملکیت اوموندې شو.نو دده اقرار به په ده باندې حجت وی.او غلام به آزادیږی.نو هم دغه ډول کله چې مضارب اووئیل.چه ددې غلام نسب زما نه ثابت شوې دې.نو ترکومه پورې چې دده ملکیت نه وی.تر هغه وخته پورې به دده اقرار لغوه وی.او هرکله چې د نفع ښکاره کیدلو په وجه دده شرکت پیدا شو.نو دعوه به صحیح وی.

وَإِذَا صَحَّتْ الدَّعْوَةُ وَثَبَتَ النَّسَبُ بهرحال هرکله چې دعوه صحیح او نسب ثابت شو. عَتَقَ الْوَلَدُ نو بچې آزاد شو. لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِي بَعْضِهِ ،ددې په بعض جزء کې د مضاربت ملکیت موجود کیدلو په وجه. وَلَا يَضْمَنُ لِرَبِّ الْمَالِ شَيْئًا مِنْ قِيمَةِ الْوَلَدِ او هغه به د رب المال لپاره د بچې د قیمت د هیڅ شي ضامن نه وی. لِأَنَّ عِتْقَهُ ثَبَتَ بِالنَّسَبِ وَالْمِلْكِ ځکه چې دده آزادی د نسب او ملکیت سبب سره ثابته شوې ده. وَالْمِلْكُ آخِرُهُمَا او ملکیت په دوی دواړو کې آخری دې. فَيُضَافُ إِلَيْهِ نود آزادئ حکم به هم دې اړخ ته مضاف وی. وَلَا صُنْعَ لَهُ فِيهِ ،اود ملك په حاصلولو کې د مضارب هیڅ فعل (دخل) نشته. وَهَذَا ضَمَانُ إِعْتَاقٍ اودا د آزادولو تاوان دې. فَلَا بُدَّ مِنْ التَّعَدِّي نود تعدی کیدل ضروری



دی. وَلَمْ يُوجَدْ او هغه اونه موندې شو.

**تشریح:** بیا هرکله چې د مضارب دعوه صحیح او نسب ثابت شو.نو ذکر شوې غلام کوم چې دې خپل خوئې ګڼړی.آزاد به وی.ځکه چې مضارب دده د بعض جزء مالك جوړشوې دې.او دې به د رب المال لپاره د غلام د قیمت ضامن نه وی.ځکه چې د آزادئ سبب دوې (دوه) خبرې دی.نسب او ملکیت،او په دې کې آخری خبره ملکیت دې.نود آزادئ حکم به هم دې اړخ ته مضاف وی. ﴿لان الحكم إذا ثبت بعلة ذات وصفين يضاف إلى آخرهما وجودا﴾ اودا ښکاره ده.چه د ملکیت په حاصلولو کې د مضارب هیڅ اختیاری حرکت نشته.بلکه پخپله قیمت زیاتیدلو سره نفع کیدلو سره دده ملکیت پیدا شو.حالانکه دلته کې ضمان د اعتاق دې.چه ددې لپاره د تعدی (فعل او حرکت) کیدل ضروری دی.او هغه دلته کې اونه موندې شو.نو مضارب به ضامن نه وی.بلکه د رب المال استحقاق صرف غلام سره متعلق پاتې شو.چه دده په نسبت ده د خپل خوی کیدلو دعوه کړې ده.او هغه د یو جزء آزادیدلو په وجه د خرڅولو قابل پاتې نشو.

(وَلَهُ أَنْ يَسْتَسْعِيَ الْغُلَامَ) او که رب المال غواړی.غلام باندې دې مزدوری اوکړی. لِأَنَّهُ احْتُبِسَتْ مَالِيَّتُهُ عِنْدَهُ ،ځکه چې دده مالیت غلام سره ګیر شوې دې. وَلَهُ أَنْ يُعْتِقَ او که غواړی.آزاد دې کړی. لِأَنَّ الْمُسْتَسْعَى كَالْمُكَاتَبِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ،ځکه چې مستسعی (محنت مزدوری کونکې) غلام د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مکاتب په مثل دې. وَيَسْتَسْعِيهِ فِي أَلْفٍ وَمِائَتَيْنِ وَخَمْسِينَ ،بیا په صورت د سعایت (مزدورئ) کې به په دولس نیم سوه کې سعایه کوی. لِأَنَّ الْأَلْفَ مُسْتَحَقٌّ بِرَأْسِ الْمَالِ ځکه چې زر خو د راس المال په وجه مستحق دی. وَالْخَمْسُمِائَةِ رِبْحٌ او پنځه سوه نفع ده. وَالرِّبْحُ بَيْنَهُمَا کومه چې دوی کې نیم په نیمه وه. فَلِهَذَا يَسْعَى لَهُ فِي هَذَا الْمِقْدَارِ په دې وجه به په دې مقدار کې هم سعایت کوی.

**تشریح:** اوس رب المال ته دا اختیار شته.چه غلام باندې (خپل راس المال او نفع دپاره) مزدوری اوکړی.ځکه چې دده مالیت غلام سره دده د آزادیدلو په وجه ګیر شوې دې.او ده دا اختیار هم دې.چه خپه برخه هم آزاده کړی.ځکه چې کوم غلام باندې سعایت واجب وی.هغه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د مکاتب غلام پشان د آزدئ قابل دې.بیا د سعایت په صورت کې به دې د غلام نه دولس نیم سوه درهمو مزدوری اخلی.ځکه چې زر درهم خود اصل مال وجه مستحق دی.او پنځه سوه نفع د دواړو په منځ کې نیم په نیمه وه.نو نیمه نفع یعنی دوې (دوه) نیم سوو لپاره به هم سعایت کوی.دغه شان د سعایت کل مقدار دولس نیم سوه درهمه شو.

### د تیرې شوې مسئلې پاته صورت

ثُمَّ إِذَا قَبَضَ رَبُّ الْمَالِ الْأَلْفَ بیا هرکله چې وصول کړل رب المال زر درهم، لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُدَّعِيَ نِصْفَ قِيمَةِ الْأُمِّ نو دې د نسب مدعی د نصف قیمت ضامن کولې شي. لِأَنَّ الْأَلْفَ الْمَأْخُوذَ لَمَّا اسْتَحَقَّ بِرَأْسِ الْمَالِ ځکه چې هرکله هغه اخستی زر دراهم مستحق شو. لِكَوْنِهِ مُقَدَّمًا فِي الِاسْتِيفَاءِ د راس المال نه استیفاء کې د مقدم کیدلو په وجه، ظَهَرَ نو ښکاره شوه. أَنَّ الْجَارِيَةَ كُلَّهَا رِبْحٌ چې پوره وینځه نفع ده. فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا نودا به په دواړو کې مشترك وی. وَقَدْ تَقَدَّمَتْ دَعْوَةٌ صَحِيحَةٌ او وړاندې دعوه صحیح شوه. لِاحْتِمَالِ الْفِرَاشِ الثَّابِتِ بِالنِّكَاحِ د نکاح په ذریعه د ثابتیدونکی فراش احتمال باندې، وَتَوَقَّفَ نَفَاذُهَا او ددې نفاذ موقوف پاتې شو. لِفَقْدِ الْمِلْكِ ،د ملك نه کیدلو په وجه. فَإِذَا ظَهَرَ الْمِلْكُ نو هرکله چې ملك ښکاره شو. نَفَذَتْ تِلْكَ الدَّعْوَةُ نو هغه دعوه به نافذ کیږی. وَصَارَتْ الْجَارِيَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او وینځه به دده ام ولد جوړیږی. وَيَضْمَنُ نَصِيبَ رَبِّ الْمَالِ او دې به د رب المال د برخې (حصې) ضامن وی. لِأَنَّ هَذَا ضَمَانُ تَمَلُّكٍ ځکه چې دا ضمان د تملك دې. وَضَمَانُ التَّمَلُّكِ لَا يَسْتَدْعِي صُنْعًا او ضمان د تملك دده هیڅ فعل نه غواړی. كَمَا إِذَا اسْتَوْلَدَ جَارِيَةً بِالنِّكَاحِ لکه چې یوکس نکاح اوکړی. او وینځه ام ولد جوړه کړی. ثُمَّ مَلَكَهَا هُوَ وَغَيْرُهُ وِرَاثَةً بیا دې د بل کس سره د وراثت په طور باندې ددې مالك شو. يَضْمَنُ نَصِيبَ

شَرِيكِهِ نو د خپل شريك د برخې (حصې) به ضامن كيږي. كَمَا هٰذَا هم دغه ډول دلته كي هم ده. بِخِلَافِ ضَمَانِ الْوَلَدِ عَلٰى مَا مَرَّ په خلاف د بچي د ضمان.

**تشريح:** بيا هركله چې رب المال د غلام نه زر درهم وصول كړل نو ده ته دا اختيار شته. چه مضارب كوم چې د غلام د نسب مدعى دې. د ده نه د غلام دمور يعني د وينځې نصف قيمت واپس واخلي. وجه دا ده چه رأس المال كوم چې زر درهم وو. هغه وړاندې په دې وجه لګولې شوى دى. چه د هغې حاصلول مقدم دى. اود هغې د وصول كيدلو نه روسته دا ښكاره شوه. چه پوره وينځه نفع كي ده. نو هغه به هم د شرط موافق دواړه كي نيم په نيمه وي. خو هغه شركت پريښولو. او نصف قيمت ئې خكه واخستلو. چې مضارب كومه وړاندې د نسب دعوه كړې وه. هغه صحيح وه. ددې احتمال په وجه چې كومه وينځه ده په رأس المال باندې اخستې ده. چه دا د وړاندې نه د ده منكوحه وى. د كومې د بچي د نسب چې دې مدعى دې خو ددې دعوې نفاذ د ملكيت نه كيدلو په وجه توقف كي وو. او هركله چې د بچي قيمت زياتيدلو سره د نفع استحقاق ثابت شو. اود مضارب ملكيت ښكاره شو. نو اوس د نسب دعوه نافذ شوه. او وينځه د ده ام ولد شوه. نو دې به د رب المال لپاره د خپلې ام ولد د نصف قيمت ضامن وى. خكه چې دا ضمان د تملك دې، چه دا هيڅ فعل نه غواړي. يعني كوم سړي ته چې د مال عين ملكيت حاصل شي. نو هغه د اصل مالك لپاره ضامن كيږي. اګرچه دې د وارث سره د وراثت په طور ددې وينځې مالك شوى دې. نو دې به د خپل شريك دحصې ضامن وى. په خلاف د ضمان د ولد، چه دا ضمان د اعتاق دې. چه دې كي د تعدى (عمل) ضرورى دې. او هغه اونه موندې شو. په دې وجه به د بچي د قميت ضامن نه وى. چه ددې تشريح وړاندې تيره شوې ده.

## (بَابُ الْمُضَارِبِ يُضَارِبُ)

ژباړه: (دا) باب د هغه مضارب (په بيان كي) دې، چې هغه بل مضارب جوړه وى.

**تشريح: الربط بما قبله⊙** د مضاربت اول د احكامو ذكر كولو نه روسته د مضاربت ثاني احكام بيانه وى. ① د دې مناسبت صاحب د غايه او صاحب د عنايه ﷫ داسې بيان كړې دې. چه ړومبې مضاربت مفرد دې. اود مضارب مضاربت مركب دې. او مركب د مفرد نه روسته وى. خو دا توجيه په خائې نه ده (بې خايه ده). خكه چې د مضارب مضاربت اګرچه د رب المال د مضاربت نه روسته كيږي. خو مركب نه دې. بلكه مفرد دې. ② نو صحيح وجه دا ده كومه چې په نهايه او معراج او صاحب د عنايه ذكر كړې ده يعنى چې مضاربت ثانى د مضاربت اول نه روسته كيږي. نود حكم بيان هم دغه شان كول پكار دى. په نهايه او معراج كي هم داسې ذكر دى. اود صاحب د نتائج په نيز د مناسبت هم دا وجه زياته خوښه ده.

### د رب المال د اجازت نه بغير د مضارب په مضاربت باندې د مال وركولو حكم

قَالَ (وَإِذَا دَفَعَ الْمُضَارِبُ الْمَالَ إِلٰى غَيْرِهِ مُضَارَبَةً كله چې مضارب چاته په مضاربت باندې څه مال وركړى. وَلَمْ يَأْذَنْ لَهُ رَبُّ الْمَالِ حالانكه ده ته رب المال ددې اجازت نه وو وركړې. لَمْ يَضْمَنْ بِالدَّفْعِ نو صرف په وركاوه سره به ضامن نه وى. وَلَا يَتَصَرَّفُ الْمُضَارِبُ الثَّانِي ونه د مضارب ثاني په تصرف كاوه سره، حَتّٰى يَرْبَحَ تر دې چې نفع حاصل كړى. فَإِذَا رَبِحَ نو هركله چې ده نفع حاصله كړله. ضَمِنَ الْأَوَّلُ لِرَبِّ الْمَالِ) نو مضارب اول به رب المال لپاره ضامن وى. وَهٰذَا رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ. دا د امام ابوحنيفه ﷫ نه د حسن روايت دې. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: صاحبين ﷫ فرمائى. إِذَا عَمِلَ بِهِ ضَمِنَ رَبِحَ أَوْ لَمْ يَرْبَحْ، [1] چې هركله دوهم (مضارب) مال سره كار

[1] القول الراجح هو قول الصاحبين ﷫ كذا فى ردالمحتار (٥٤٣\٤) وملتقى الأبحر (٤٥٣\٣) وبدائع الصنائع (١٤٥\٦) وخلاصة الفتاوى (١٨٩\٤) ومجمع الأنهر (٤٥٣\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢١٠\٢)



پيل كړو. نو اول (مضارب) ضامن شو. دوهم ته كه نفع وى اوكه نه وى. وَهٰذَا ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ. اودا ظاهر الرواية دې. وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللّٰهُ: امام زفر ﷫ فرمائى. يَضْمَنُ بِالدَّفْعِ عَمِلَ أَوْ لَمْ يَعْمَلْ، چې په وركاوه سره به ضامن وى. كه كار اوكړى. اوكه اونكړى. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ هم دا يو روايت د امام ابويوسف ﷫ دې. لِأَنَّ الْمَمْلُوكَ لَهُ الدَّفْعُ عَلٰى وَجْهِ الْإِيدَاعِ، خكه چې ده ته د وديعت په طور د وركاوه اختيار شته. وَهٰذَا الدَّفْعُ عَلٰى وَجْهِ الْمُضَارَبَةِ. اودا وركول د مضاربت په طريقه دى. وَلَهُمَا صاحبينو ﷫ دليل دادې. أَنَّ الدَّفْعَ إِيدَاعٌ حَقِيقَةً، چې دوهم مضارب ته وركول په حقيقت كي ايداع ده. وَإِنَّمَا يَتَقَرَّرُ كَوْنُهُ لِلْمُضَارَبَةِ بِالْعَمَلِ او ددې مضاربت لپاره مقرر كيدل به په كار پيل كاوه سره كيږي. فَكَانَ الْحَالُ مُرَاعًى قَبْلَهُ نو ددې نه د وړاندې حال لحاظ به كولاى شى. وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې. أَنَّ الدَّفْعَ قَبْلَ الْعَمَلِ إِيدَاعٌ چې مال وركول دعمل نه وړاندې ايداع ده. وَبَعْدَهُ إِبْضَاعٌ، او ددې نه روسته بضاعت وركول دى. وَالْفِعْلَانِ يَمْلِكُهُمَا الْمُضَارِبُ او مضارب ددې دواړو مالك دى. فَلَا يَضْمَنُ بِهِمَا، نو په دې سره به ضامن نه وى. إِلَّا أَنَّهُ إِذَا رَبِحَ خو كله چې دوهم نفع حاصل كړله. فَقَدْ أَثْبَتَ لَهُ شَرِكَةً فِي الْمَالِ نو مال كي د ده شركت ثابت شو. فَيَضْمَنُ نو اوس به ضامن وى. كَمَا لَوْ خَلَطَهُ بِغَيْرِهِ لكه كه مضارب اول مال د بل كس سره ګډ كړى.

**تشريح:** مضارب د رب المال د اجازت نه بغير بل يو كس ته مضاربت باندې مال وركړو. نو مضارب اول باندې به صرف په مال وركولو سره ضمان نه لازميږي. تر كومه پورې چې مضارب ثاني د تجارت عمل اونكړى. كه مضارب ثاني ته نفع حاصل شي. اوكه حاصل نشي. ظاهر الرواية هم دادې. او هم دا د صاحبينو ﷫ قول دې. (قيل به و يفتى). د امام صاحب ﷫ نه د حسن ﷫ روايت دې. چه تر كومه پورې مضارب ثاني ته نفع حاصل نشي. هغه وخته پورې مضارب اول باندې ضمان نه راخى. د امام زفر ﷫ په نيز صرف په مال وركولو سره ضمان نه لازميږي. كه مضارب ثاني عمل اوكړى. او كه اونكړى. دا يو روايت د امام ابويوسف ﷫ نه هم دې. او آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دى. خكه چې مضارب ته د وديعت په طريقه د مال وركولو حق دې. د مضاربت په طريقه نه دې.

ⓐ صاحبين ﷫ (په دليل كي) فرمائى. چه د مضارب وركول په حقيقت كي ايداع ده. مضاربت لپاره به دا هغه وخت وى. كله چې د مضارب ثاني د اړخه عمل اوموندې شي.

ⓑ امام صاحب ﷫ (په دليل كي) فرمائى. چه د عمل نه وړاندې مال وركول ايداع ده. اود عمل نه روسته ايضاح ده. او مضارب لپاره په دواړه طريقه د وركولو حق دې. نو نه به ايداع سره ضامن كيږي. او نه په ايضاح سره. نو هركله چې مضارب ثاني ته نفع حاصل شي. هغه وخت به ضامن وى. خكه چې اوس په مال كي د مضارب ثاني شركت ثابت شو.

وَهٰذَا اودا هغه وخت دى. إِذَا كَانَتِ الْمُضَارَبَةُ صَحِيحَةً، كله چې مضاربت صحيح وى. فَإِنْ كَانَتْ فَاسِدَةً كه فاسد وى. لَا يَضْمَنُهُ الْأَوَّلُ، نو اول به ضامن نه وى. وَإِنْ عَمِلَ الثَّانِي اګرچه دوهم كار پيل كړى. لِأَنَّهُ أَجِيرٌ فِيهِ خكه چې هغه په دې كي مزدور دې. وَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ او هغه ته به اجر مثل ملاويږي. فَلَا تَثْبُتُ الشَّرِكَةُ بِهِ نو دې سره به شركت نه ثابتيږي.

**تشريح:** د ،،هذا،، مشار اليه په مضارب اول باندې د ضمان واجبول دى. صاحب د نهايه او صاحب د معراج الدرايه ﷫ چې په وخت د ربح يا عمل ونيلى دى. مضارب اول او مضارب ثاني دواړو باندې ئې وجوب ضمان مشار اليه منلې دې. دا خكه صحيح نه ده. چه ثاني باندې د ضمان دوجوب خو لا تراوسه چرته ذكر نشته. دلته كي خو رب المال لپاره مضارب اول باندې د ضمان وجوب پسې لګيدلى دى. پاتې شوه دا چې مضارب ثاني باندې به ضمان وى. اوكه نه؟ ددې تفصيل دوې (دوه) كرخې روسته به خپل قول ﴿ثم ذكر فى الكتاب يضمن الأول و لم يذكر الثانى﴾ بيانولې شي.

بهرحال د قول مطلب دادې چه مضارب اول باندې د ضمان د وجوب حکم هغه وخت دې کله چې مضاربت ثانيه صحيح وی.( او ړومبې مضاربت هم صحيح وی )، که مضاربت ثانيه فاسد وی.( او ړومبې صحيحه وی.يا دواړه فاسد وی.يا ړومبې فاسد وی.او دوهم صحيحه وی )،نو مضارب اول به د مال ضامن نه وی.اګرچه دوهم مضارب کار پيل کړی.ځکه چې دوهم مضارب اجير دې.چه ده ته به د خپل کار اجر مثل ملاويږی.نو دده په کار پيل کولو، يا نفع حاصلولو سره اصل مال کې هيڅ شرکت او ګډون نه ثابتيږی.حالانکه ضمان هغه وخت واجبيږی.کله چې نفع کې د ثانی شرکت ثابت شی.

سوال: کله چې مضاربت اول فاسد وی.نو د دوهم مضاربت صحيح کيدل خو متصور کيداې هم نشی.ځکه چې ثانی خو په اول باندې مبنی دې؟

خواب: په دې صورت کې دمضاربت ثانيه صحيح کيدلو نه مراد دادې.چه دا صورةً جائز وی.په دې طريقه چې مضارب ثانی لپاره د نفع دومره مقدار مشروط وی.چه دې سره مضاربت فی الجملة جائز کيږی.

**مضارب اول به ضامن وی.اوکه مضارب ثانی؟**

ثُمَّ ذَكَرَ فِي الْكِتَابِ بيا ئې په کتاب کې ذکر کړل.يَضْمَنُ الْأَوَّلُ چې مضارب اول به ضامن وی.وَلَمْ يَذْكُرِ الثَّانِي.او د دوهم ذکرئې اونکړو.وَقِيلَ ونيلی شوی دی.يَنْبَغِي أَنْ لَا يَضْمَنَ الثَّانِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ چې دوهم ضامن کيدل پکار نه دی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز.وَعِنْدَهُمَا يَضْمَنُ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به ضامن وی.بِنَاءً عَلَى اخْتِلَافِهِمْ فِي مُودِعِ الْمُودَعِ. د مودع المودع په اړه کې ددوی د اختلاف په وجه.

**تشريح:** په کتاب کې د مضارب اول ضمان خو ذکر شوې دې.د مضارب ثانی ذکر نشته. دده په اړه کې دمشائخو اختلاف دې.بعض فرمائی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوهم مضارب ضامن کيدل پکار نه دی.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز ضامن کيدل پکار دی.په مودع المودع باندې قياس کولو سره،چه په هغې کې هم دا حکم دې.مثلاً يو کس زيد سره وديعت کيخودلو.او زيد هغه د بکر سره وديعت کيخودلو.او بکر دا ضائع کړو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به بکر ضامن نه وی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز مودع ته اختيار دې.که غواړی.نو اول ( زيد) نه دې ضمان واخلی.اوکه غواړی.نو ثانی (بکر) نه دې ضمان واخلی.هم په دې قياس رب المال ته اختيار دې.اود امام صاحب رحمه الله په نيز دوهم مضارب به ضامن نه وی.

وَقِيلَ او ونيلی شوی دی.رَبُّ الْمَالِ بِالْخِيَارِ چې بالاجماع رب المال ته اختيار دې.إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْأَوَّلَ که غواړی.اول ضامن جوړ کړی.وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الثَّانِي که غواړی.ثانی جوړ کړی.بِالْإِجْمَاعِ وَهُوَ الْمَشْهُورُ،اوهم دا مشهوره ده.وَهٰذَا عِنْدَهُمَا ظَاهِرٌ چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو ښکاره ده.وَكَذَا عِنْدَهُ،دغه ډول د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم،وَوَجْهُ الْفَرْقِ لَهُ بَيْنَ هٰذِهِ وَبَيْنَ مُودِعِ الْمُودَعِ اود امام ابوحنيفه رحمه الله لپاره په دې کې او په مودع المودع کې وجه د توپير داده.أَنَّ الْمُودَعَ الثَّانِي يَقْبِضُهُ لِمَنْفَعَةِ الْأَوَّلِ چې مودع دوهم کې د مودع اول د نفع لپاره اخلی.فَلَا يَكُونُ ضَامِنًا،نو هغه به ضامن نه وی.أَمَّا الْمُضَارِبُ الثَّانِي،پاتې شو دوهم مضارب.يَعْمَلُ فِيهِ لِنَفْعِ نَفْسِهِ نو هغه د خپلې ذاتی نفع لپاره کار کوی.فَجَازَ أَنْ يَكُونَ ضَامِنًا.نو هغه ضامن کيداې شی.

**تشريح:** او بعض مشائخو ونيلی دی.چه رب المال ته بالاجماع اختيار دې.که غواړی.مضارب اول نه دې تاوان واخلی.اوکه غواړی. دوهم مضارب نه دې واخلی.او په مذهب کې هم دا قول مشهور دې.ځکه چې تعدی د دواړو د اړخه موندلې شوې ده.د اول د اړخه دغير مال ور کاوه سره،اود ثانی د اړخه مال اخستلو سره،اوس دا حکم د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو ښکاره دې.ځکه چې دې د مودع المودع په صورت کې دواړو نه د ضمان اخستلو اختيار ورکوی.نود مضاربت په صورت کې به هم رب المال ته دا اختيار وی.پاتې شو امام ابوحنيفه رحمه الله ، نو دوی د وديعت په صورت کې د وديعت مالک ته د مودع ثانی نه د ضمان اخستلو اختيار نه ورکوی.اود مضاربت په صورت کې د مضارب ثانی نه د ضمان اخستلو اختيار ورکوی.



وجه د توپير داده.چه مودع ثانی خو مال د مودع اول د منفعت لپاره اخلی.خپله څه ذاتی نفع ئې مقصود نه وی.ځکه چې د وديعت ساتنه د اول په ذمه دې.او هرکله چې ده دوهم ته ورکړو.نو دې په قبضه کاوه کې دده په حکم سره عامل شو.دده عمل اول اړخ ته منتقل شو.ګويا اول پخپله ساتنه کړې دې.اود وديعت حکم هم دادې.که دا د اول په قبضه کې هلاک شی.نو ضمان نه واجبيږی.نو هم دغه ډول د ثانی په قبضه کې ضائع کيدلو سره به هم ضمان نه واجبيږی.په خلاف د مضارب ثانی ،چه دې مال کې دخپلې ذاتی نفع په خاطر تصرف کوی.نو دده عمل به غير اړخ ته نه منتقل کيږی.نو دې ضامن کيدلې شی.

ثُمَّ إِنْ ضَمِنَ الْأَوَّلُ بيا که مالک د اول نه تاوان واخستلو.صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ بَيْنَ الْأَوَّلِ وَبَيْنَ الثَّانِي نو مضاربت به صحيح وی.د اول او دوهم په منځ کې ،وَكَانَ الرِّبْحُ بَيْنَهُمَا عَلَى مَا شَرَطَا او نفع به د دوی دواړو په منځ کې د شرط موافق وی.لِأَنَّهُ ظَهَرَ ځکه دا ښکاره شوه.أَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ مِنْ حِينِ خَالَفَ بِالدَّفْعِ إِلَى غَيْرِهِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي رَضِيَ بِهِ چې مضارب اول د مال تاوان ورکړو.او مالک شو.د هغه وخت نه کله چې ده مخالفت کړې وو. دوهم له ئې په داسې طريقه ورکړو.چه مالک په دې راضی نه وو.فَصَارَ كَمَا إِذَا دَفَعَ مَالَ نَفْسِهِ نو داسې شوه.لکه چې ده خپل ذاتی مال ورکړې وی.

**تشريح:** بيا که رب المال د مضارب اول نه تاوان واخستلو.نو په مضارب اول او دوهم کې چې کوم عقد مضاربت مقرر شوې وو.هغه به صحيح وی.او نفع به دوی دواړو کې د شرط مطابق وی.ځکه چې مضارب اول ددې مال تاوان ورکړو.او مالک شو.اودا ملکيت هغه وخت نه حاصل شو.کله چې ده خپل دوهم مضارب ته دمالک د رضا خلاف مال ورکړې وو.نودا داسې شوه.لکه چې ګويا ده خپل ذاتی مال ورکړې وو.

وَإِنْ ضَمِنَ الثَّانِي اوکه د دوهم نه ئې تاوان واخستلو.رَجَعَ عَلَى الْأَوَّلِ بِالْعَقْدِ نو په اول به رجوع کوی.په سبب د عقد،

**تشريح:** اوکه مالک د دوهم مضارب نه تاوان واخستلو.نو دې به د عقد په وجه مال د مضارب اول نه واپس اخلی.ځکه چې هغه خود اول لپاره عمل کوی.لکه مثلاً غاصب که مغصوب څيز ديوکس سره وديعت کيخودلو.او مالك د مودع نه ضمان واخستلو.نو مودع د غاصب نه واپس اخلی.او په دې وجه هم چې دوهم مضارب د عقد مضاربت په ضمن کې د مضارب اول د اړخه دهوکه خوړلې ده.نو هغه به د دهوکه کونکی ( مضارب اول) نه واپس اخلی.او عقد مضاربت به صحيح وی.اونفع به دوی دواړو کې د شرط موافق وی.ځکه چې د تاوان لزوم په حقيقت کې مضارب اول باندې دې.نو ګويا مالک د ابتداء نه تاوان هم دده نه اخستې دې.بيا مضارب اول لپاره هغه نفع حلال ده.ځکه چې هغه د نفع مستحق دخپل کار په وجه دې.او په کار کې هيڅ بدی نشته.البته مضارب اول لپاره نفع پاکه ( حلاله) ده.ځکه چې ده ته نفع دملکيت د استحقاق په وجه ده.او ددې ملکيت نسبت تاوان ادا کاوه باندې دې.نودا يو ډول بدئ نه خالی نه دې.

لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ ځکه چې دوهم خو اول لپاره کار کوی.كَمَا فِي الْمُودَعِ لکه څنګه چې د مودع په صورت کې دی.وَلِأَنَّهُ مَغْرُورٌ مِنْ جِهَتِهِ فِي ضِمْنِ الْعَقْدِ.او ځکه چې دوهم خو دده د اړخه دهوکه خوړلې ده.دعقد په ضمن کې ، وَتَصِحُّ الْمُضَارَبَةُ او مضاربت به صحيح وی.وَالرِّبْحُ بَيْنَهُمَا عَلَى مَا شَرَطَا او نفع به په دوی دواړو کې د شرط موافق وی.لِأَنَّ قَرَارَ الضَّمَانِ عَلَى الْأَوَّلِ ځکه چې د تاوان ثبوت په اول باندې دې.فَكَأَنَّهُ ضَمِنَهُ ابْتِدَاءً نو ګويا مالک په ابتداء کې هم دده نه تاوان اخستې دې.وَيَطِيبُ الرِّبْحُ لِلثَّانِي او دوهم لپاره نفع پاکه ده.وَلَا يَطِيبُ لِلْأَعْلَى اول لپاره نه ده.لِأَنَّ الْأَسْفَلَ يَسْتَحِقُّهُ بِعَمَلِهِ ځکه چې دوهم خو ددې مستحق د خپل کار په وجه دې.وَلَا خُبْثَ فِي الْعَمَلِ،او په کار کې هيڅ بدی نشته.وَالْأَعْلَى يَسْتَحِقُّهُ بِمِلْكِهِ الْمُسْتَنِدِ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ او اول ددې مستحق د خپل ملکيت په وجه دې.کوم چې د ضمان په اداء سره مستند دې.وَلَا يَعْرَى عَنْ نَوْعِ خُبْثٍ نودا يو ډول بدئ ( پليتئ ) نه خالی نه دې.

**تشريح:** دلته بين الکلامين د تناقض کيدلو اعتراض کيږی.ځکه وړاندې ئې ونيلی وو چه أما المضارب يعمل

له نفع نفسه﴾ چې مضارب د خپلې نفع لپاره کار کوي. او دلته کې فرمائي. چه هغه غير لپاره کار کوي؟ جواب*دادي. چه دا تناقض نه دي. ځکه چې دا اختلاف د جهت په اعتبار سره دي. لکه چې د مضارب خان لپاره عمل کول په دې جهت سره دی. چه هغه نفع کې شريك دي. اود غير لپاره عامل کيدل په دې جهت سره دی. چه دې په ابتداء کې مودع المودع دې. او يو شی ته د مختلف جهاتو په سبب دوې (دوه) نومونه ورکول تناقض نشي. وښيلې. نوکه د زيد پلار او خوښې دواړه وی. نود پلار په جهت سره خوښې، او د خوی په جهت سره پلار وښيلې شي.

### د نيمې نفع د مضارب په دريمه برخه باندې بل کس د مضاربت لپاره ورکولو حکم

قال ﴿فَإِذَا دَفَعَ رَبُّ الْمَالِ مُضَارَبَةً بِالنِّصْفِ مالك مال د نصف نفع په مضاربت باندې ورکړو. وَأَذِنَ لَهُ بِأَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى غَيْرِهِ و بل کس ته ئې په مضاربت باندې د ور کاوه اجازت هم ورکړو. فَدَفَعَهُ بِالثُّلُثِ نو هغه ته بل چاته په دريمه برخه د نفع په مضاربت باندې مال ورکړو. وَقَدْ تَصَرَّفَ الثَّانِي و هغه کار اوکړو. وَرَبِحَ، و نفع ئې حاصله کړله. فَإِنْ كَانَ رَبُّ الْمَالِ قَالَ لَهُ نوکه مالك مضارب اول ته دا وښيلي وی. عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَ اللَّهُ فَهُوَ بَيْنَنَا نِصْفَانِ چې کومه نفع الله ﷻ درکوی. هغه به موږ دواړو کې په نيمه وی. فَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ نو مالك لپاره به نيمه نفع وی. وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي الثُّلُثُ و دوهم مضارب لپاره به دريمه برخه نفع وی. وَلِلْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ السُّدُسُ) او مضارب اول لپاره به شپږمه برخه وی. لِأَنَّ الدَّفْعَ إِلَى الثَّانِي مُضَارَبَةً قَدْ صَحَّ لِوُجُودِ الْأَمْرِ بِهِ مِنْ جِهَةِ الْمَالِكِ ځکه چې دوهم مضارب ته مضاربت باندې مال ورکول صحيح شو. دمالك د طرفه، د هغه د اجازت په وجه. وَرَبُّ الْمَالِ شَرَطَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ جَمِيعِ مَا رَزَقَ اللَّهُ تَعَالَى او مالك خپل خان لپاره د کل نفع د نصف شرط لګولې دی. فَلَمْ يَبْقَ لِلْأَوَّلِ إِلَّا النِّصْفُ نو اول لپاره صرف نيمه پاتې شوه. فَيَتَصَرَّفُ تَصَرُّفُهُ إِلَى نَصِيبِهِ نو دده تصرف به صرف هم دده برخې (حصې) ارخ ته ګرځولې شی. وَقَدْ جَعَلَ مِنْ ذَلِكَ بِقَدْرِ ثُلُثِ الْجَمِيعِ لِلثَّانِي اوده په دې برخه کې د کل نفع د دريمې په اندازه دوهم مضارب لپاره شرط کړې دي. فَيَكُونُ لَهُ فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا السُّدُسُ، نو دده لپاره د کل دريمه شوه. نود شپږمې برخې (حصې) نه سوا هيڅ پاته پاتې نشو.

**تشريح:** مضارب د رب المال په اجازت دوهم سړی ته په مضاربت بالثلث باندې مال ورکړو. حالانکه رب المال مضارب اول سره دا فيصله کړې وه. چه کومه نفع الله ﷻ درکړی. هغه به زموږ په منځ کې نيم په نيمه وی. نو رب المال ته به ددې شرط په وجه د کل نفع نصف ملاويږي. او مضارب ثاني ته به يو ثلث (دريمه) ملاويږي. ځکه چې مضارب اول دده لپاره د کل نفع يو ثلث مقرر کړې وو. اوس پاته پاتې شو. يو سدس (شپږمه)، نودا به مضارب اول ته ملاويږي. مثلاً مضارب ثاني ته شپږ درهمه نفع اوشوه. نو درې درهمه به رب المال ته ملاويږي. او دوې (دوه) به مضارب ثاني ته. او يو به مضارب اول ته ملاويږي.

وَيَطِيبُ لَهُمَا ذَلِكَ اودا نفع به دواړو لپاره حلال وی. لِأَنَّ فِعْلَ الثَّانِي وَاقِعٌ لِلْأَوَّلِ ځکه چې د دوهم مضارب فعل اول لپاره واقع شوې دي. كَمَنْ اسْتُؤْجِرَ عَلَى خِيَاطَةِ ثَوْبٍ بِدِرْهَمٍ نو داسې شوه. لکه چې يو درزی ئې د يوې کپړې د ګنډلو په يو درهم باندې مزدور کړو. وَاسْتَأْجَرَ غَيْرَهُ عَلَيْهِ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ او درزی د نصف درهم په عوض ګنډلو باندې بل څوك (درزی) مزدور کړو.

**تشريح:** مضارب اول او مضارب دوهم ته چې کوم څه ملاؤ شوی دی. يعنی مضارب ثاني ته ثلث، او مضارب اول ته سدس (شپږمه)، نودا ددوی دواړو لپاره حلال ده. ځکه چې د دوهم مضارب عمل مضارب اول لپاره واقع شوې دي. نو داسې شوه. لکه چې يو درزی ئې د يوې کپړې ګنډلو لپاره مزدور کړو. او هغه په بل درزی دا کپړه په اتانې (نيمه روپۍ) کې اوګنډله. نو مزدوری دواړو لپاره حلال ده.

بيا علامه مرغيناني رحمه الله ددې خبرې صراحت ځکه کړې دي. چه مضارب اول اګرچه پخپله کار نه دې



کړې خود دواړو عقدونو مباشر (او عاقد) ضروردې. په دې وجه به نفع دده لپاره هم حلال وی. ايا نه ګورې، که ده د بل سره د بضاعت معامله اوکړله. او هغه ته نفع شوې وی. نو مضارب لپاره د نفع برخه حلال ده. اګرچه ده پخپله عمل نه دې کړې.

(وَإِنْ كَانَ قَالَ لَهُ عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَكَ اللَّهُ او مالك دا وښيلې وی. چه کومه نفع تاته الله تعالى درکړی. فَهُوَ بَيْنَنَا نِصْفَانِ هغه به موږ دواړو کې نيم په نيمه وی. فَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي الثُّلُثُ نو مضارب اول لپاره به د کل نفع دريمه وی. وَالْبَاقِي بَيْنَ الْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ وَرَبِّ الْمَالِ نِصْفَانِ) او پاته به د مالك او مضارب اول په منځ کې نيم په نيمه وی. لِأَنَّهُ فَوَّضَ إِلَيْهِ التَّصَرُّفَ ځکه چې مالك مضارب اول ته اختيار ورکړو. وَجَعَلَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ مَا رَزَقَ الْأَوَّلُ او کوم څه چې اول ته نصيب شو. د هغې نيم ئې خپل خان لپاره شرط کړل. وَقَدْ رُزِقَ الثُّلُثَيْنِ او حال داچه اول ته په (دريوکې) دوې (دوه) برخې (حصې) نفع نصيب شوه. فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا، نودا به په دوی دواړو کې نيم په نيمه وی. بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د رومبی صورت، لِأَنَّهُ جَعَلَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ جَمِيعِ الرِّبْحِ چې په دې کې مالك د خپل خان لپاره د کل نفع نصف شرط کړې وو. فَافْتَرَقَا نو په دواړو صورتونو کې توپير ښکاره شو.

**تشريح:** اوکه مالك مضارب اول ته په خطاب کې داسې اووئيل. چه ﴿ما رزقك الله فهو بيننا نصفان﴾ چې کومه نفع الله تعالى تاته درنصيب کړی. هغه زموږ په نيز نيم په نيمه ده. يا ئې داسې اووئيل چه ﴿ما ربحت لی هذا من شيء ما كسبت فيه من كسب، ما رزقت من شيء ما صار لك فيه من ربح، فهو بيننا نصفان﴾ او پاته مسئله پخپل حال وی. نو مضارب ثاني ته به يو ثلث ملاويږي. او پاته دوې (دوه) ثلثه به د مضارب اول او رب المال په منځ کې نيم په نيمه تقسيميږي. نو په دې صورت کې به درې وارو ته دوې (دوه) دوې (دوه) درهمه ملاويږي. ځکه چې دلته رب المال د خان لپاره د نفع ددې مقدار نيم مقرر کړې دې. کوم چې مضارب اول ته حاصل شي. او هغه دلته کې دوې (دوه) ثلثه دې. نو رب المال ته به ددې نصف يعنی يو ثلث ملاويږي. په خلاف د رومبۍ مسئلې، چې هغې کې رب المال خان لپاره دکل نفع نصف مقرر کړې وو. او په دوهم صورت کې چې کوم څه نفع مضارب اول ته نصيب شوه. د هغې نيم شرط دې. نو په دواړو صورتونو کې چې کوم توپير دې. هغه هم دادې.

### د نيمې نفع د مضارب بل کس ته نيم په نيمه د مضاربت لپاره د ورکولو مسئله

(وَلَوْ كَانَ قَالَ لَهُ اوکه رب المال مضارب اول ته دا اووئيل. فَمَا رَبِحْتَ مِنْ شَيْءٍ چې کومه نفع تا حاصل کړې ده. فَبَيْنِي وَبَيْنَكَ نِصْفَانِ هغه زما او ستا په منځ کې نيم په نيمه ده. وَقَدْ دَفَعَ إِلَى غَيْرِهِ بِالنِّصْفِ و حال داچه مضارب اول بل (مضارب) ته په نيمه ورکړې دې. فَلِلثَّانِي النِّصْفُ نو دوهم مضارب لپاره به نيمه نفع وی. وَالْبَاقِي بَيْنَ الْأَوَّلِ وَرَبِّ الْمَالِ) و پاته (نفع) به د مضارب اول او رب المال په منځ کې برابر وی. لِأَنَّ الْأَوَّلَ شَرَطَ لِلثَّانِي نِصْفَ الرِّبْحِ ځکه چې اول دوهم لپاره د نصف شرط کړې وو. وَذَلِكَ مُفَوَّضٌ إِلَيْهِ مِنْ جِهَةِ رَبِّ الْمَالِ اود رب المال د اړخه ده ته ددې اختيار هم وو. فَيَسْتَحِقُّهُ. نو دوهم به ددې د نصف مستحق وی. وَقَدْ جَعَلَ رَبُّ الْمَالِ لِنَفْسِهِ نِصْفَ مَا رَبِحَ الْأَوَّلُ او رب المال د خان لپاره د هغې نفع نيم مقرر کړې دې. کوم چې مضارب اول وګټی. وَلَمْ يَرْبَحْ إِلَّا النِّصْفَ او هغه صرف نيم ګټلې دې. فَيَكُونُ بَيْنَهُمَا نو هم دا به په دوی دواړو کې برابر وی.

**تشريح:** اوکه رب المال مضارب ته اووئيل. چه ته کومه نفع حاصل کړې. هغه زموږ په منځ کې نيم په نيمه ده. او مضارب اول مضارب ثاني ته په مضاربت بالنصف باندې مال ورکړو. نو مضارب ثاني ته به دده شرط په وجه نصف ملاويږي. او په پاته نصف کې به رب المال او مضارب اول دواړه برابر شريك وی. يعنی يو ربع (څلورمه) به د رب المال وی. او يوه ربع به د مضارب اول وی. نو مضارب ثاني ته به (شپږ درهمو کې) درې درهمه ملاويږي. او رب المال او مضارب اول ته به يو نيم، يونيم درهم ملاويږي.

(وَلَوْ كَانَ قَالَ لَهُ عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَ اللَّهُ تَعَالَى اوکه رب المال دا وښيلي وی. چه کوم څه الله درکړی. فَلِي نِصْفُهُ

د هغې نيم زما دې. **أَوْ قَالَ** يا ئې دا ونيلي وي. **فَمَا كَانَ مِنْ فَضْلٍ** چې كوم څه زيادت اوشي. **فَبَيْنِي وَبَيْنَكَ نِصْفَانِ** هغه زما او ستا په منځ كې نيم په نيمه دې. **وَقَدْ دَفَعَ إِلَى آخَرَ مُضَارَبَةً بِالنِّصْفِ** و حال داچه اول (مضارب) دوهم ته په نيمه نفع مال وركړې دې. **فَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ** نو رب المال لپاره به نيمه نفع وي. **وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي النِّصْفُ** و نيمه به د دوهم مضارب لپاره وي. **وَلَا شَيْءَ لِلْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ** او مضارب اول لپاره به هيڅ نه وي. **لِأَنَّهُ جَعَلَ لِنَفْسِهِ نِصْفَ مُطْلَقِ الْفَضْلِ** ځكه چې مالك د مطلق زياتوالي نصف خپل ځان لپاره مقرر كړې دې. **فَيَنْصَرِفُ شَرْطُ الْأَوَّلِ النِّصْفَ لِلثَّانِي إِلَى جَمِيعِ نَصِيبِهِ** نود مضارب اول دوهم لپاره د نيم شرط كول به پوره برخې (حصې) ارخ ته راجع وي. **فَيَكُونُ لِلثَّانِي بِالشَّرْطِ** نود دوهم لپاره به نصف وي. د شرط په وجه. **وَيَخْرُجُ الْأَوَّلُ بِغَيْرِ شَيْءٍ** او مضارب اول به مفت اوځي. **كَمَنِ اسْتُؤْجِرَ لِيَخِيطَ ثَوْبًا بِدِرْهَمٍ** لكه يو درزي د يو درهم په عوض د كپړې ګنډلو لپاره مزدور كړې شو. **فَاسْتَأْجَرَ غَيْرَهُ** او هغه بل درزي اجرت باندې واخستلو. **لِيَخِيطَهُ بِمِثْلِهِ** چې د يو درهم په عوض كپړه اوګنډي.

**تشريح:** اوكه رب المال مضارب اول ته اوونيل چه كوم څه الله ﷻ دركړي. د هغې نصف زما دې. يا ئې دا اوونيل چه كوم څه زيادت اوشي. هغه زما او ستا په منځ كې نيم په نيمه دې. او پاته مسئله پخپل حال وي. نو نيمه نفع به د رب المال وي. او نيمه به د مضارب ثاني وي. او مضارب اول ته به هيڅ نه ملاويږي. ځكه چې ده خپله نصف نفع مضارب ثاني ته وركړله. او مالك على الاطلاق زياتيدلو كې نصف خپل ځان لپاره شرط كړې دې. نود مضارب اول، مضارب ثاني لپاره د نصف شرط كول به د اول (مضارب) پوه برخې (حصې) ارخ ته راجع كيږي. نو دوهم مضارب لپاره به د نيمې نفعې د شرط په بناء، نيمه نفع وي. او مضارب اول به مفت كې اوځي.

**(وَإِنْ شَرَطَ لِلْمُضَارِبِ الثَّانِي ثُلُثَيِ الرِّبْحِ)** وكه د مضارب ثاني لپاره ئې (په دريو كې) د دوې (دوه) برخو نفع مقرر كړله. **فَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ** نو نيمه نفع به د مالك وي. **وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي النِّصْفُ** و نيمه به د مضارب ثاني وي. **وَيَضْمَنُ الْمُضَارِبُ الْأَوَّلُ لِلثَّانِي سُدُسَ الرِّبْحِ فِي مَالِهِ)** او رومبې مضارب به دوهم ته د نفع شپږمه برخه د خپل ما نه وركوي. **لِأَنَّهُ شَرَطَ لِلثَّانِي شَيْئًا هُوَ مُسْتَحَقٌّ لِرَبِّ الْمَالِ** ځكه چې ده د بل لپاره داسې شئ شرط كړې دې چه د هغې رب المال مستحق دې. **فَلَمْ يَنْفُذْ فِي حَقِّهِ** نو د رب المال په حق كې به دده شرط نه نافذ كيږي. **لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِبْطَالِ** ځكه چې دې كې د حق ابطال دې. **لَكِنَّ التَّسْمِيَةَ فِي نَفْسِهَا صَحِيحَةٌ** خو تسميه (يعني نوم اخستل) پخپل ذات سره صحيح دې. **لِكَوْنِ الْمُسَمَّى مَعْلُومًا فِي عَقْدٍ يَمْلِكُهُ** ځكه چې مسمى مقدار په داسې عقد كې معلوم دې. دكوم چې دې مالك دې. **وَقَدْ ضَمِنَ لَهُ السَّلَامَةَ** حالانكه مضارب اول، د دوهم لپاره د سلامتيا ضمانت اخستې دې. **فَيَلْزَمُهُ الْوَفَاءُ بِهِ** نو ددې پوره كول به هم په ده لازم وي.

**تشريح:** اوكه مضارب اول مضارب ثاني لپاره د نفع د دوې (دوه) ثلث (په دريو كې د دوې (دوه) حصو) شرط اوكړو. نو نيمه نفع به د رب المال وي. او نيمه به د مضارب ثاني وي. اوس به مضارب اول، مضارب ثاني ته د نفع يو سدس د خپل ارخه وركوي. ځكه چې ده د دوهم مضارب لپاره داسې شئ شرط كړې دې. چه د هغې مستحق رب المال دې. نو د رب المال په حق كې به دده شرط نه نافذ كيږي. ځكه چې دې كې د رب المال حق تلفي لازميږي. خو چونكه ده (په دريو كې) د دوې (دوه) برخو نفع نوم اخستې دې. اودا تسميه (نوم اخستل) پخپله صحيح دې. ځكه چې مسمى مقدار په داسې عقد كې معلوم شوې دې. د كوم چې دې مالك دې. او حال داچه مضارب اول د مضارب ثاني لپاره ددې خبرې ضمانت اخستې دې. چه هغه به ده ته ددې شرط موافق نفع ورسپاري. نو ددې ضمانت پوره كول به هم په ده لازم وي.

**وَلِأَنَّهُ غَرَّهُ فِي ضِمْنِ الْعَقْدِ** او ځكه چې اول (مضارب) د عقد په ضمن كې دوهم ته دهوكه وركړې ده. **وَهُوَ سَبَبُ**



**الرُّجُوعِ** كوم چې د رجوع كاوه سبب دې. **فَلِهَذَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ** په دې وجه به هغه په اول (مضارب) باندې رجوع كوي. **وَهُوَ نَظِيرُ مَنِ اسْتُؤْجِرَ لِخِيَاطَةِ ثَوْبٍ بِدِرْهَمٍ** او دا ددې مثال دې. كوم چې د يو درهم په عوض د كپړې ګنډلو لپاره اجير كړې شو. **فَدَفَعَهُ إِلَى مَنْ يَخِيطُهُ بِدِرْهَمٍ وَنِصْفٍ** او هغه دوهم كس د يو نيم درهم په عوض ګنډلو لپاره مزدور كړو.

**تشريح:** او په دې وجه هم چې مضارب اول، مضارب ثاني ته د يو عقد په ضمن كې دهوكه وركړې ده. كوم چې د استحقاق سبب وي. نو مضارب ثاني به دده نه د نفع شپږمه برخه نوره اخلي. بيا علامه مرغيناني ﷫ د، في ضمن العقد،، قيد ځكه لګولې دې. چه دهوكه كه د عقد په ضمن كې نه وي. نو هغه موجب د ضمان نه وي. لكه مثلاً يو كس بل چا ته اوونيل. چه دا لاره په امن ده. په دې لاره شه. حالانكه دا لاره په امن نه وه. او هغه په دې لاره لاړلو. او ډاكوانو لوټ كړو. نو لاره خودونكې به ضامن نه وي. ځكه چې دا دهوكه دكوم عقد په ضمن كې نه ده.

**د مضارب د رب المال دپاره، د غلام د كار په شرط دده دپاره، اود ځان لپاره د نيمې نفع شرط لګولو حكم**

**(فَصْلٌ) (وَإِذَا شَرَطَ الْمُضَارِبُ لِرَبِّ الْمَالِ ثُلُثَ الرِّبْحِ** كه شرط اوكړو، مضارب د رب المال لپاره د دريمې برخې (حصې) د نفعې،

**تشريح:** كه مضارب د رب المال لپاره دريمه برخه نفع شرط كړله. اود رب المال د غلام لپاره ئې دريمه برخه نفع په دې شرط مقرر كړله. چه غلام به دده سره كار كوي. او دريمه برخه نفع ئې خپل ځان لپاره شرط كيخودله. نودا جائز دى. كه غلام ماذون وي. اوكه نه وي. او ماذون كه مديون او مقروض وي. اوكه نه وي. ځكه چې د غلام قبضه هم يوه معتبر قبضه ده. بالخصوص كله چې هغه ماذون وي. اودلته چې هركله دغلام كار كول شرط كړې شو. نودا غلام لپاره د تجارت اجازت شو. او هغه عبد ماذون شو. نو داسې قسمه شرط لګول جائز دى.

**وَلِعَبْدِ رَبِّ الْمَالِ ثُلُثَ الرِّبْحِ** اود رب المال د غلام لپاره د دريمې برخې (حصې) نفع (شرط ده)

**تشريح:** په كتاب كې عبد سره د رب المال قيد احترازي دې. اوكه اتفاقي؟ په دې اړه كې صاحب د نهايه او صاحب د معراج الدرايه ﷭ فرمائيلي دى. چه دا قيد د شرط په طور نه دې. ځكه چې د مضارب غلام حكم هم دادې. صاحب د نهايه ﷫ چې د ذخيره او مغنى نه كوم تفصيل رانقل كړې دې. هغه هم په دې باندې دلالت كوي. صاحب دمعراج ﷫ دا هم ونيلي دى. كه مذكوره شرط د اجنبي (پردي) لپاره وي. بيا هم دغه حكم دې. بلكه د هر هغه سړي حكم هم دغه دې. دچا لپاره چې د مضارب يا رب المال ګواهي نه قبليږي. خو شيخ كاكي ﷫ ليكلي دى. چه مذكوره قيد ددې لپاره دې. چه د رب المال د غلام په اړه كې د بعض شوافعو او د بعض حنابله اختلاف دې. او دده نه د علاوه په اړه كې د هيڅ چا اختلاف نشته. صاحب د كفايه ﷫ فرمائي. چه د عمل د اشتراط په وخت د عبد مضارب د لفظ هم دا حكم دې. ددې باوجود كتاب كې د عبد سره چې كوم د رب المال قيد دې. په دې سره د يو وهم ازاله مقصود ده. او هغه داچه د غلام قبضه خود آقا قبضه ده. نو مانع خليه كيدل پكار دى. ،، فقال هو جائز،، صاحب د نتائج ﷫ هم دې ته حق وائي.

**عَلَى أَنْ يَعْمَلَ مَعَهُ** په دې شرط چې هغه به دده سره كار كوي. **وَلِنَفْسِهِ ثُلُثَ الرِّبْحِ** او خپل ځان لپاره ئې د دريمې برخې (حصې) نفع (شرط اوكړو). **فَهُوَ جَائِزٌ** نودا جائز دى. **لِأَنَّ لِلْعَبْدِ يَدًا مُعْتَبَرَةً** ځكه چې د غلام قبضه هم معتبر ده. **خُصُوصًا إِذَا كَانَ مَأْذُونًا لَهُ** خاص كر هغه وخت كله چې هغه ماذون وي. **وَاشْتِرَاطُ الْعَمَلِ إِذْنٌ لَهُ** اود كار شرط لګول ددې لپاره صحيح دې.

**تشريح:** ددې قيد په ذريعه ددې صورت نه احتراز دې. كله چې دغلام كار كول شرط نه وي. ځكه چې دې كې تفصيل دې. او هغه داچه په دې صورت كې به كتلې شي. چه دغلام په ذمه پور شته او كه نشته. نوكه دده په ذمه قرضه نه وي. نود مضارب مذكوره شرط به صحيح وي. كه غلام د مضارب وي. اوكه د رب المال

وی.وجه داده.چه د غلام په حق کي د ذکر شوی شرط صحيح کول ځکه متعذر دی.چه د نفع استحقاق يا په راس المال سره کيږي.يا کار سره کيږي.يا د عمل په ضمان سره کيږي.اود غلام په حق کي په دې کي يوځيز هم متحقق نه دې.نو شرط مذکور به دده د آقا په حق کي ګرځولې شي. «لان ما هو شرط للعبد شرط لمولاه إذا لم يكن عليه دين»

ℹ که د غلام په ذمه پور وی.نو کتلې به شي.چه غلام د مضارب دې.اوکه د رب المال دې.که غلام د مضارب وی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به شرط صحيح نه وی.او مشروط به رب المال لپاره وی.ځکه چې دې صورت کي د مذکوره شرط تصحيح د مضارب په حق کي هم متعذر ده.مطلب دادې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مضارب د خپل غلام د ګټې نه مالك کيږي.کله چې دده په ذمه پور وی.البته د صاحبينو رحمهما الله په نيز به شرط صحيح وی.او ددې پوره کول به ضروری وی.اوکه غلام د رب المال وی.نو مشروط به بالاتفاق رب المال لپاره وی.( غايه)

وَلِهٰذَا لَا يَكُونُ لِلْمَوْلٰى وِلَايَةُ أَخْذِ مَا أَوْدَعَهُ الْعَبْدُ په دې وجه آقا ته د هغه شیٔ د اخستلو اختيار نشته.کوم چې غلام امانت ايخودې وی. وَإِنْ كَانَ مَحْجُورًا عَلَيْهِ،اګرچه دا غلام محجور وی. وَلِهٰذَا يَجُوزُ بَيْعُ الْمَوْلٰى مِنْ عَبْدِهِ الْمَأْذُونِ لَهُ، او هم دا وجه ده.چه د آقا د خپل ماذون غلام په لاس هرڅه خرڅول جائز دی. وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ هرکله چې دا خبره ده. لَمْ يَكُنْ مَانِعًا مِنَ التَّسْلِيمِ وَالتَّخْلِيَةِ بَيْنَ الْمَالِ وَالْمُضَارِبِ،نو ذکرشوی شرط به دمال سپارلو، اود مضارب او د مال په منځ کي د تخليه کيدلو نه مانع نه وی. بِخِلَافِ اشْتِرَاطِ الْعَمَلِ عَلٰى رَبِّ الْمَالِ په خلاف د رب المال باندې د کار کاوه د شرط لګولو، لِأَنَّهُ مَانِعٌ مِنَ التَّسْلِيمِ عَلٰى مَا مَرَّ،ځکه چې دا سپارلو نه مانع دې.لکه څنګه چې تير شو. وَإِذَا صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ او هرکله چې مضاربت صحيح شو. يَكُونُ الثُّلُثُ لِلْمُضَارِبِ بِالشَّرْطِ نو دريمه برخه به مضارب لپاره وی.د شرط په وجه، وَالثُّلُثَانِ لِلْمَوْلٰى،او ( په دريو کي ) دوې (دوه) برخې (حصې) به آقا لپاره وی. لِأَنَّ كَسْبَ الْعَبْدِ لِلْمَوْلٰى ځکه چې د غلام مزدوری آقا لپاره وی. إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ،کله چې په هغه باندې قرضه نه وی. وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ اوکه په ده باندې قرضه وی. فَهُوَ لِلْغُرَمَاءِ،نو مزدوری به د قرضخواهانو لپاره وی. هٰذَا إِذَا كَانَ الْعَاقِدُ هُوَ الْمَوْلٰى، دا هغه وخت دی.کله چې عاقد آقا وی.

**تشريح:** يعنی د غلام قبضه چونکه معتبر قبضه ده.په دې وجه آقا ته دا اختيار نشته.چه غلام کوم شیٔ چا سره امانت ايخودې دې.هغه دې راواخلی.او په دې وجه هم چې د آقا د خپل غلام په لاس څه خرڅول جائز دی.هرکله چې دا خبره ده.نو شرط مذکور به د مال سپارلو او تخليه نه مانع نه وی.او مضاربت به صحيح وی.ددې په خلاف که مضاربت کي د تجارت کار د رب المال په ذمه شرط وی.نو هغه به فاسد وی.ځکه ورانديې تير شو.چه په دې سره د مضارب قبضه نه پوره کيږي.او تخليه سره دده په قبضه کي مال نه رسيږي.بهرحال هرکله چې دده دغلام د کار شرط لګول صحيح دی.نود مضاربت د صحيح کيدلو په وجه به د شرط موافق دريمه برخه نفع د مضارب وی.او دوې (دوه) برخې (حصې) به د آقا وی.ځکه چې د غلام مزدوری دده د آقا وی.په دې شرط چې د غلام په ذمه پور نه وی.

وَلَوْ عَقَدَ الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ عَقْدَ الْمُضَارَبَةِ مَعَ أَجْنَبِيٍّ اوکه ماذون غلام د يو اجنبی سره عقد مضاربت کړې وی. وَشَرَطَ الْعَمَلَ عَلَى الْمَوْلٰى اود آقا په ذمه ئې د کار کاوه شرط اولګولو. لَا يَصِحُّ نودا صحيح نه ده. إِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ که دده په ذمه پور نه وی. لِأَنَّ هٰذَا اشْتِرَاطُ الْعَمَلِ عَلَى الْمَالِكِ،ځکه چې دا خو پخپله مالك باندې د کار کاوه شرط شو. وَإِنْ كَانَ عَلَى الْعَبْدِ دَيْنٌ اوکه د غلام په ذمه قرضه وی. صَحَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو صحيح ده. لِأَنَّ الْمَوْلٰى بِمَنْزِلَةِ الْأَجْنَبِيِّ عِنْدَهُ عَلٰى مَا عُرِفَ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ ځکه چې ددوی په نيز آقا په مرتبه د اجنبی دې.لکه څنګه چې معلومه شوې ده.

**تشريح:** مذکوره حکم هغه وخت دې.کله چې عاقد د مضاربت آقا پخپله وی.خو که ماذون غلام يو اجنبی سره





عقد مضاربت اوکړو.اود آقا په ذمه ئې د کار کاوه شرط اولګولو.نو کتلې به شي.چه په عبد ماذون باندې قرضه شته اوکه نشته؟ که قرضه نه وی.نو عقد به صحيح نه وی.ځکه چې دا خو پخپله مالك باندې د تجارت کار کول شرط شو.اوکه د غلام په ذمه قرضه وی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به عقد صحيح وی.ځکه چې د کتاب الماذون نه دا معلومه شوې ده.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مقروض غلام په نسبت آقا د اجنبی په مرتبه کی دې.

## فصل في العزل والقسمة

ژباړه: ( دا) فصل د معزول کولو او د ويش ( په بيان کي ) دې.

### د معزولۍ او د ويش بيان اود مضاربت لپاره د وکالت حکم

قَالَ (وَإِذَا مَاتَ رَبُّ الْمَالِ أَوِ الْمُضَارِبُ کله چې مضارب يا رب المال کي د يو کس انتقال اوشی. بَطَلَتِ الْمُضَارَبَةُ) نو مضاربت باطليږي.

**تشريح:** اوکه رب المال يا مضارب مړشی.نو مضاربت باطليږي.ځکه چې د مضارب دعمل نه روسته مضاربت د توکيل په حکم کي وی.لکه څنګه چې په پيل د باب کي ذکر شو .وکالت د مؤکل يا وکيل په مرګ سره باطليږي.او مضاربت هم د وکالت پشان دې.نو مضاربت به هم باطليږي.او وجه په اصل کي داده.چه مضارب په مال کي تصرف کوی.نود رب المال په اجازت سره ئې کوی.لکه څنګه چې دوکيل تصرف د مؤکل په اجازت سره کيږي.او هرکله چې د رب المال انتقال اوشو.نو دده اجازت هم ختم شو.نود غير په مال کي به د هغه د اجازت نه بغير تصرف جائز نه وی.دغه شان د مضارب په مرګ سره هم مضاربت باطليږي.ځکه چې مضاربت په منزله د توکيل دې.اود وکيل مړکيدل وکالت هم باطلوی.او وکالت د وکيل وارثانو طرف ته نه منتقل کيږي.نوهم دغه شان به مضاربت هم نه منتقل کيږي.

لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ عَلٰى مَا تَقَدَّمَ،ځکه چې دا يو توکيل دې.لکه څنګه چې مخکي تيرشو. وَمَوْتُ الْمُوَكِّلِ يُبْطِلُ الْوَكَالَةَ،اود مؤکل مړ کيدل، وکالت باطلوی. وَكَذَا مَوْتُ الْوَكِيلِ او هم دغه ډول د وکيل مړکيدل ( هم وکالت باطلوی )، وَلَا تُورَثُ الْوَكَالَةُ وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او وکالت موروثي نه وی.لکه څنګه چې وړاندې تيرشو.

**تشريح:** د شيخ اتقانی او علامه عينی رحمهما الله وغيره په نيز د مضاربت توکيل کيدل،د اصل کلی په طريقه نه دی.بلکه په يو څو مسئلو کي د مضاربت او توکيل دواړو حکم مختلف دې.

① رومبۍ مسئله داده.کومه چې شيخ الاسلام علاء الدين اسبيجابی رحمه الله په شرح کافی کي د، ،باب شراء المضارب وبيعه، ، لاندې ذکر کړې ده.چه مضارب يو غلام واخستلو.او بيا د عيب په وجه ئې دا واپس کول اوغوښتل.نو خرڅونکی دده نه د قسم مطالبه اوکړله.چه دې په دې عيب باندې راضی شوې نه وو.او بله دا چې دکوم وخت نه مضارب دا اخستې دې.د هغه وخت نه تر اوسه پورې ئې دا غلام د خرڅولو لپاره نه دې پيش کړې.او مضارب د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو غلام به مضاربت باندې پاته پاتې وی.ځکه چې زيات نه زيات هم داده.چه دا معامله ابتدائی وی.اوکه دده دا په ابتداء کي اخستې وو.نو صحيح کيدله.هم دغه شان دعيب په وجه د غلام واپس کولو په صورت کي به هم صحيح وی.دغه شان که دده د عيب اقرار اوکړو.بيا به هم د مضاربت په معامله غلام په ده لازم وی.په خلاف د وکيل، چې دې د شراء مالك نه دې.نو دده اقرار به صحيح نه وی. ② دويمه مسئله داده.کومه چې په شرح کافی کي د، ،باب المضارب يدفع المال مضاربة، ، لاندې ذکر ده.چه يوسړی مضارب ته د مضاربت بالنصف په طور زر درهم ورکړل.او وې ويل. «إعمل فيه برأيك»، ، يعنی په دې کي پخپله مرضۍ تجارت کوه، ،مضارب دغه مال بل کس ته د مضاربت بالثلث په طور ورکړو.هغه کار اوکړو.او نفع ئې حاصل کړله.نو دوهم مضارب لپاره به دريمه برخه نفع وی او مضارب اول لپاره به شپږمه برخه اود رب المال لپاره به نصف نفع وی.اوس که مضارب ثانی هم دا مال يو دريم کس ته په

مضاربت باندې ورکړي. حالانکه مضارب ثاني ته دا وئيلي شوي وو. چه ﴿إعمل فيه برأيك﴾ نو وکيل ثاني بل څوک وکيل نشي جوړولې. ځکه چې د وکيل اول ته ولايت د توکيل په اجازت سره ملاؤ شوي دې او اجازت خاص طور باندې هم دده په حق کي دې. نو دا اجازت به د غير په حق کي نه ثابتيږي. په خلاف د مضارب، ده ته دا ولايت د عقد شرکت په وجه حاصل شوي دې. ځکه چې ده ته د ﴿إعمل فيه برأيك﴾ وئيلو په وجه على الاطلاق د تجارت اجازت اوشو. نو د تجارت د ټولو اقسامو مالك شو. ﴿وهذا نوع تجارة فملك التفويض إلى غيره﴾

③ دريمه مسئله داده. چه هر کله وکيل ته د څه اخستلو نه وړاندې ثمن ورکړې شو. او هغه د اخستلو نه روسته دده سره هلاك شو. نو وکيل به د خپل موکل نه دوباره ثمن اخلي. اوس که دا هم هلاك شي. نو بيا به د موکل نه اخلي. په خلاف د مضارب چې دې په رب المال باندې بار بار رجوع کوي. تردې چې ثمن بائع ته اوسپيږي. وجه داده. چه وکيل خپل ځان لپاره تصرف کوي. په دې وجه ذمه داري هم په ده عائد (لازم) کيږي. خو ده چونکه ثمن د موکل په حکم سره ادا کړي دی. په دې وجه دې رجوع کولې شي. او هر کله ده يو ځل رجوع اوکړله. نو کوم څه چې په ده باندې موکل لپاره واجب وو. هغه ئې واخستل. اود موکل ذمه برى شوه. نو ددې نه روسته رجوع نشي کولې. په خلاف د مضارب، چې دې مال خپل ځان لپاره نه اخلي. بلکه مضاربت لپاره ئې اخلي.

④ څلورمه مسئله داده. چه مضارب په مال مضاربت سره څه سامان واخستلو. او رب المال دې د مضاربت نه معزول کړو. نو دده معزول کول به ګټور نه وی. اګرچه مضارب ته ددې علم اوشي. په خلاف د وکيل، چه که ده ته د معزولئ علم اوشي. نو دې معزول کيږي. وجه داده. چه په ذکرشوي حالت کي حق د مضاربت دې اسبابو سره تړلې شوي دې. چه نفع حاصل شي. چه ددې حقدار مضارب هم دې. اود وکيل هيڅ حق ددې سره متعلق نه دې.

⑤ پنځمه مسئله داده. که رب المال مرتد شي. او دارالحرب ته لاړ شي. ددې نه روسته مسلمان شو. او واپس راغئ. نو دې پخپل حال مضارب پاتې وی. په خلاف د وکالت، چې هغه د مرتد کيدلو نه پاته نه پاتې کيږي. لکه چې عنقريب (نيزدې) راروان دی.

### د رب المال د مرتد کيدلو حکم

﴿وَإِنْ ارْتَدَّ رَبُّ الْمَالِ عَنِ الْإِسْلَامِ﴾ وَالْعِيَاذُ بِاللَّهِ او که رب المال د اسلام نه واوړيدلو. العياذ بالله ﴿وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ﴾ او په دارالحرب کي ملاؤ شو. ﴿بَطَلَتِ الْمُضَارَبَةُ﴾ بيا هم مضاربت باطل شو. لِأَنَّ اللُّحُوقَ بِمَنْزِلَةِ الْمَوْتِ، ځکه چې دالحرب کي ملاويدل په مرتبه د مرګ دی. أَلَا تَرَى أَنَّهُ يُقْسَمُ مَالُهُ بَيْنَ وَرَثَتِهِ آيا نه ګورې. چه دده مال دده په وارثانو کي تقسيمولي شي.

**تشريح:** که رب المال، معاذالله،، مرتد شي. او دارالحرب ته لاړشي. (او قاضي د هغه د دارالحرب کي د ملاويدلو حکم اوکړي). بيا به هم مضاربت باطل وی. ځکه چې ددې په وجه دده املاك زائل کيږي. او وارثانو طرف ته منتقل کيږي. او دده هرقسمه وينځې او مدبر غلام آزاديږي. نودا دده د مرګ په مرتبه کي شو.

**فائده⊛** د رب المال د مرتد کيدلو او دارالحرب کي د شامليدلو د مسئلې يو څو صورتونه دی. هغه داسې چې مرتد کيدل او تللو نه پس، هغه بيا مسلمان شو، او واپس راغئ او که نه؟ ① که مسلمان واپس رانغلو. نو مضاربت به باطل وی. ② او که مسلمان شو. او واپس راغئ. نودا واپس کيدل به د قاضي د حکم لګولو نه وړاندې وی. يا به ددې نه روسته وی. که واپسي د قاضي د فيصلې نه وړاندې وی. نو مضاربت به باطل نه وی. بلکه پخپل حال به پاته وی. ځکه چې هر کله دده مرتد کيدل د قاضي د اتصال د حکم نه وړاندې مات شو. نو دهغه حکم باطل شو. ګويا چې دې د سره مرتد شوې هم نه دې. ③ او که واپسي د قاضي دفيصلې نه روسته وی. نو بالاتفاق به مضاربت باطل وی.

**تنبيه⊛** په عنايه، کفايه، وغيره عامو شروحاتو کي ليکلي شوي دی. چه په دې کي بعض مبسوط طرف ته منسوب کړي دی. چه په کتاب کي د مضاربت د بطلان کوم حکم ذکر دې. دا هغه وخت دې. کله چې رب المال



د مرتد کيدلو نه روسته مسلمان واپس رانشي. او که هغه مسلمان شي. او واپس راشي. نو عقد مضاربت به پخپل حال برقرار پاتې وی. که واپسي د قاضي د فيصلې نه وړاندې وی. او که روسته وی. که واپسي د قاضي د فيصلې نه وړاندې وی. نود عدم بطلان وجه داده. چه داسې حالت په مرتبه د غائب کيدلو دې. اود رب المال غائب کيدل نه د عزل موجب دی. او نه د اهليت د بطلان موجب دی. او که د قاضو. د فيصلې نه روسته وی. نود مضاربت عدم بطلان د مضارب د حق په وجه دی. لکه مثلاً که هغه په حقيقت کي مړ شي. ﴿انتهى كلامهم﴾

✍ صاحب د نتائج رحمه الله فرمائي. چه په دې کلام کي خو ① اول دا اشکال دې. که هغه حقيقتاً مړ شي. بيا به خو مضاربت يقيناً باطليږي. لکه چې په وړاندې مسئله کي تير شو. بيا دا وئيل څنګه صحيح شو. چه ﴿كما لو مات حقيقتا﴾ (البته دا که ﴿كما لو مات حقيقتا﴾ دې صورت سره مقيد کړې شي. کله چې راس المال اسباب وی. چه په دې صورت کي مضارب نه معزول کيږي. لکه څنګه چې کتاب کي روسته راروان دی). ② دوهم ځکه که د قاضي د قضاء نه روسته مسلمان شي. او راواپس شي. او په دې صورت کي د عقد مضاربت پخپل حال د پاته پاتې کيدلو علت د مضارب حق وی. نو بيا د رب المال د نه واپس کيدلو په صورت کي هم مضاربت پاته پاتې کيدل پکار دی. ځکه چې حق د مضارب چې کوم علت هلته کي وو. هغه دلته کي هم دې؟

✍ نو صحيح خبره هم داده. که رب المال د مرتد کيدلو نه روسته مسلمان راواپس نشي. يا دده واپسي د قاضي د فيصلې نه روسته وی. نو په دې دواړو صورتونو کي هيڅ فرق نشته. دواړو کي به مضاربت باطل وی. د علامه مرغيناني رحمه الله د تعليل ﴿لأن اللحوق بمنزلة الموت﴾ نه هم دا معلوميږي. ځکه چې هر کله لحوق په منزله د مرګ دی. او په مرګ سره مضاربت باطليږي. نو هم دغه شان به په دې سره هم باطليږي. کوم چې په مرتبه د مرګ کي دی. ددې نه علاوه په بعض نورو معتبراتو سره هم دا ښکاره کيږي. لکه په بدائع کي دی. چې ﴿و لو ارتد رب المال فباع المضارب أو إشترى بالمال بعد الردة فذالك كل موقوف في قول أبي حنيفة رحمه الله إن رجع إلى الإسلام بعد ذالك نفذ ذالك كله و التحق ردته بالعدم في جميع أحكام المضاربة و صار كأنه لم يرتد أصلاً و كذا إذا لحق بدار الحرب ثم عاد مسلماً قبل أن يحكم بلحاقه بدار الحرب﴾

✍ دغه شان د شيخ الاسلام علاء الدين اسبيجابي په شرح کافي حاکم شهيد کي دی. ﴿و لو إرتد رب المال ثم قتل أو مات أو لحق بدار الحرب فإن القاضي يجيز البيع و الشراء على المضارب و الربح له و يضمنه رأس المال في قياس قول أبي حنيفة رحمه الله و قال أبو يوسف و محمد رحمهما الله هو على المضاربة بالولاية الأصلية فيتوقف و يبطل بالموت أو بالقضاء باللحوق و لو لم يرفع الأمر إلى القاضي حتى عاد المرتد مسلماً جاز جميع ذالك على المضاربة لأنه إنقضت ردته قبل إتصال القضاء بها فبطل حكمها﴾ د ذکر شوي دواړو عبارتونو د الفاظو نه دا خبره بالکل واضحه ده. چه د قاضي د فيصلې نه روسته مسلمانيدل، اود واپس راتګ په صورت کي مضاربت باطل شو.

﴿وَقَبْلَ لُحُوقِهِ يَتَوَقَّفُ تَصَرُّفُ مُضَارِبِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ﴾ اود لحوق (يعني دارالحرب کي د ملاويدلو) نه وړاندې به دده د مضارب تصرف موقوف پاتې وی. دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ لَهُ ځکه چې مضارب کار هم دده لپاره کوی. فَصَارَ كَتَصَرُّفِهِ بِنَفْسِهِ نو دده پخپله د تصرف کاوه پشان شو.

**تشريح:** يعني هر کله چې رب المال مرتد شوي دې. نو دده د لحوق بدارالحرب نه وړاندې به دده د مضارب واړه تصرفات (اخستل خرڅول وغيره) دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز موقوف وی. که هغه اسلام قبول کړی. نود مضاربت تصرفات به نافذ کيږي. او که هغه مړشي. يا په مرتد کيدلو باندې قتل کړې شي. يا هغه دارالحرب کي ملاؤ شي. او قاضي دده د لاحق کيدلو حکم ورکړي. نو تصرفات به باطل وی. ددې وجه داده. چه مضارب خو تصرف د رب المال لپاره کوی. نو دده تصرف د رب المال د تصرف پشان شو. که هغه په دې صورت کي پخله تصرف کړې وو. نو هغه به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز موقوف وی. نو هم دغه ډول به دده نائب يعني د مضارب تصرف هم موقوف وی.

### د مضارب د مرتد کيدلو حکم

(وَلَوْكَانَ الْمُضَارِبُ هُوَالْمُرْتَدُّ) وكه مضارب مرتد شو. (فَالْمُضَارَبَةُ عَلٰى حَالِهَا) نو مضاربت به پخپل حال باندې پاتې وي. لِأَنَّ لَهُ عِبَارَةً صَحِيْحَةً، ځكه چې د مضارب عبارت يو صحيح عبارت دې. وَلَاتَوَقُّفَ فِيْ مِلْكِ رَبِّ الْمَالِ اود رب المال په ملكيت كې هيڅ توقف نشته. فَبَقِيَتِ الْمُضَارَبَةُ نو مضاربت پاته پاتې شو.

**تشريح:** په بنايه شرح هدايه كې دي. چه لفظ د،، المرتد،، د دال په نصب سره دې. ځكه چې دا د كان خبر دې. اوهو ضمير فصل دې. او په،، فبقيت المضاربة،، كې فاء كلمه د شرط محذوف جواب دې. تقدير د عبارت داسې دې. ﴿و إذا كان كذالك فبقيت المضاربة على حالها﴾

ﷺ بيا د صاحب نتائج د قول مطابق د علامه مرغيناني رحمه الله قول ﴿و لو كان المضارب هو المرتد فالمضاربة على حالها﴾ كې عقلاً دوې (دوه) احتماله دي. ① رومبې دا چې مخكنې قول د ﴿و إن إرتد رب المال و لحق بـدار الحـرب بطلت المضاربة﴾ سره متعلق شو. په دې صورت كې به مطلب دا وي. كه مرتد مضارب وي. چه دارالحرب كې ملاؤ شوې وي. نو مضاربت به پخپل حال باندې پاته وي. يعني باطل به نه وي. ② دوهم احتمال دادې. چه دا د قول ﴿و قبل لحوقه يتوقف تصرف مضاربه عند أبي حنيفة رحمه الله﴾ سره متعلق شو. په دې صورت كې به مطلب دا وي. كه موصوف مضارب مرتد وي. نو مضاربت به پخپل حال باندې پاته وي. يعني دده تصرف د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم موقوف نه دې. بلكه د ټولو په نيز دده تصرفات جائز دي.

ﷺ په دې كې رومبی احتمال طرف ته صدر الشريعة تلې دې. ﴿حيث قال في شرح قول صاحب الوقاية و تبطل بموت أحدهما و لحاق المالك مرتداً بخلاف لحاق المضارب بدارالحرب مرتداً حيث لا تبطل المضاربة لأن له عبارة صحيحة﴾ او په متاخرينو كې صاحب د درر او صاحب اصلاح او ايضاح هم ددې تابع داري كړې ده. اود وقايه د نفس عبارت نه هم دا معنى ښكاره ده. ځكه چې د مضاربت مبطل ،، مرګ،، په مضارب او رب المال كې يو طرف ته على الاطلاق مضاف كړې دې. او مبطل د مضاربت ،، لحاق،، ئې صرف رب المال طرف ته راجع كړې دې. نود وقايه عبارت په دې دلالت كوي. چه د مضارب لحاق مبطل د مضاربت نه دې. په دې بناء چې رواياتو كې يو شئ خاص طور باندې ذكر كول، ددې د ما سوا نه د حكم په نفي باندې دلالت كوي. لكه چې فقهاؤ ددې صراحت هم كړې دې.

ﷺ خو صاحب د نتائج رحمه الله فرمائي. چه زما په نيز دا مطلب صحيح نه دې. ځكه چې د مرتدينو په باب كې دا خبره ثابته شوې ده. چه هر كله مرتد دارالحرب ته لاړ شي. او حاكم دده د لحاق حكم وركړي. نو هغه په اهل حرب كې شمارلې كيږي. او اهل حرب د اسلام د احكامو په حق كې بالكل د مړي پشان دي. لكه څنګه چې د علامه مرغيناني رحمه الله د قول ﴿لأن اللحوق بمنزلة الموت الا ترى انه يقسم ماله بين ورثته﴾ نه دا خبره ښه واضحه شوې ده. او هر كله چې اهل حرب بالكل مړه دي. نو بيا د مړي تصرف څنګه متصور كيداې شي. تردې چې د مضارب تصرف پخپل حال پاته پاتې شي. هر كله چې هغه مرتد شوی وي. او دارالحرب كې شامل شوې وي.

ﷺ ددې نه علاوه د مضارب دارالحرب ته د تللو، او دده په دارالحرب كې د ملاويدلو حكم كيدلو نه روسته د مضاربت باطل كيدل په معتبرو كتابونو كې صراحت سره موجود دي. لكه بدائع كې دي. چه ﴿و إن مات المضارب أو قتل على الردة بطلت المضاربة لأنه موته في الردة كموته قبل الردة و كذا إذا لحق بدار الحرب و قضى بلحاقه لأن ردته مع اللحاق و الحكم به بمنزلة موته في بطلان تصرفه﴾ په ذكرشوی عبارت كې د صحيح او حق احتمال صراحت كوي. چه حق احتمال دوهم احتمال دې. او هم دا د صاحب هدايه مراد دې. لكه چې د مسئلې تعليل ﴿ولا توقف في ملك رب المال﴾ هم دې طرف ته صراحت كوي. ځكه چې دا قول د رب المال په ملك كې د توقف نه احتراز لپاره دې. اودا خبره ښكاره ده. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چې د رب المال په ملك كې كوم توقف دې. هغه د لحاق نه وړاندې دې. د لحاق نه روسته نه دې. نو دلته كې به هم دا توقف مراد وي. كوم چې د لحاق نه وړاندې وي.

ﷺ ددې تحقيق په رڼاكې د ذكرشوی قول مطلب دادې. كه مرتد شوې كس مضارب وي. نو دارالحرب كې د ملاويدلو نه وړاندې خو مضارب پخپل حال باندې پاته وي. يعني دده تصرف به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز موقوف نه وي. تردې كه ده څه واخستل. يا ئې خرڅ كړل. نفع ئې اوكړله. يا ئې نقصان اوكړو. بيا مړ شو. يا د



مرتد كيدلو په حالت كې قتل كړې شو. يا په دارالحرب كې ملاؤ شو. نو دده واړه تصرفات به د ټولو په نيز جائز وي. او نفع به ددوی په منځ كې د شرط موافق وي. وجه دا ده. چه د مضارب عبارت دې. ځكه چې د عبارت د صحت مدار دده په سړي كيدلو باندې دې. او هغه د مرتد كيدلو نه روسته هم سړې دې. چه په هغ كې هيڅ نقصان نشته. بلكه هغه د مرتد كيدلو نه د وړاندې پشان اوس هم په عقل او پوهه او پخپل صحيح هوش او خيالاتو سره خبرې كوي. او كار كوي. تردې كه هغه مسلمان شي. نو دده اسلام صحيح كيږي. نو دده مضاربت به بالاتفاق پاته پاتې وي. ځكه چې په دې مال مضاربت كې هغه د مالك نائب وي. پاتې شو د مرتد تصرف د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز موقوف كيدل، نو هغه په دې وجه دي. چه دده مال سره د وارثانو حق متعلق شوې دې. او د رب المال په ملك كې هيڅ توقف نشته. ځكه چې دده سره د وارثانو هيڅ حق متعلق نه دې. بهرحال په مال مضاربت كې د مضارب تصرف سره د توقف هيڅ وجه موجود نه ده. ځكه چې هغه د مالك نائب دې،، فلهذا نفذ تصرفه،، صرف دومره خبره ده. چه دده په اخستلو خرڅولو كې چې كومه ذمه داري په ده لاحق وي. هغه د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول كې رب المال باندې لازميږي. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د ردت نه روسته تصرف كې دده حال داسې دې. لكه څنګه چې د ردت نه وړاندې وو. نو مذكوره ذمه داري به په ده باندې لازميږي. خو دې به په دې كې رب المال باندې رجوع كوي.

### د مضارب د معزول كيدلو صورتونه

قَالَ (فَإِنْ عَزَلَ رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارِبَ) كه رب المال مضارب معزول كړو. وَلَمْ يَعْلَمْ بِعَزْلِهٖ او هغه د خپل ځان معزول كاوه خبر اونشو. حَتّٰى اشْتَرٰى وَبَاعَ تردې چې هغه اخستل او خرڅول اوكړل. فَتَصَرُّفُهٗ جَائِزٌ) نود هغه تصرف جائز دې. لِأَنَّهٗ وَكِيْلٌ مِنْ جِهَتِهٖ ځكه چې هغه د صاحب مال د اړخه وكيل دې. وَعَزْلُ الْوَكِيْلِ قَصْدًا يَتَوَقَّفُ عَلٰى عِلْمِهٖ او د وكيل قصداً معزول كول د هغه په علم باندې موقوف دي.

**تشريح:** د مضارب د معزول كيدلو دوې (دوه) صورتونه دي. ① رب المال مضارب معزول كړو. خو مضارب ته د خپل ځان معزول كيدلو خبر نه وي. هغه اخستل او خرڅول اوكړي. ② رب المال مضارب معزول كړو. په داسې حال كې چې راس المال نقدي (دراهم يا دنانير) وي.

**قوله: فان عزل** كه رب المال مضارب معزول كړو. او مضارب ته د خپل ځان معزول كيدلو خبر اونشو. تردې چې هغه اخستل او خرڅول اوكړل. نو د هغه تصرف جائز دې. ځكه چې هغه د رب المال د اړخه وكيل دې. او وكيل قصداً معزول كول دده په علم باندې موقوف وي. نو مضارب به هم د علم كيدلو نه بغير نه معزول كيږي. ځكه چې دا عزل قصدی دې. چه دا په علم باندې موقوف وي. چه ددې دليل شرعي اوامر او نواهي دي. د عزل قصدي قيد ددې لپاره دې. كه يو سړې د غلام اخستلو لپاره وكيل كړو. بيا مؤكل هغه غلام پخپله خرڅ كړو. نو وكيل معزول كيږي. كه هغه ته علم وي. او كه نه وي.

(وَإِنْ عَلِمَ بِعَزْلِهٖ) وكه هغه ته د خپل ځان معزول كيدل معلوم وي. وَالْمَالُ عُرُوْضٌ په داسې حال كې چې مال اسباب دي. فَلَهٗ أَنْ يَّبِيْعَهَا نو هغه خرڅولې شي. وَلَا يَمْنَعُهُ الْعَزْلُ مِنْ ذٰلِكَ) معزول كيدل به ددې نه مانع نه وي. لِأَنَّ حَقَّهٗ قَدْ ثَبَتَ فِي الرِّبْحِ، ځكه چې نفع كې دده حق ثابت شو. وَإِنَّمَا يَظْهَرُ بِالْقِسْمَةِ چې دا به په ويش سره ښكاره كيږي. وَهِيَ تُبْتَنٰى عَلٰى رَأْسِ الْمَالِ، او ويش د راس المال په جلا كاوه باندې مبنى دې.

**تشريح:** كله چې رب المال مضارب قصداً معزول كړو. او مضارب ته خبر اوشو. نو اوس د دوې (دوه) حالو نه خالي نه ده. ① يا به خو دده سره مال مضاربت اسباب وي. ② يا به ئې خرڅ كړې وي. او واړه به نقد شوې وي. نوكه اسباب وي. نو مضارب ته اختيار دې. چه اسباب خرڅ كړي. دده معزول كيدل به د اكثرو اهل علمو په نيز د بيع نه مانع نه وي. ځكه چې نفع كې دده حق ثابت شوې دې. چه دا به په ويش سره ښكاره كيږي. او ويش په جلا كاوه باندې مبنى دې. يعنى په دې چې كل مال به هغه وخت نقد وي. كله چې اسباب خرڅ كړي

شي.نو ددې دخرڅولو اود مال نقد كاوه اختيار دي.( نو په دې مسئله كي د مضاربت حكم د وكيل خلاف دې) بيا كله چې د رب المال د مضارب معزول كول، دده د خرڅولو نه مانع نشو.نو مضارب نقد يا پور چې څنګه غواړي.خرڅولې شي.تردې كه رب المال د پور خرڅولو نه منع كړو.نو دده منع كول به هيڅ ګټور نه وي.

| وَإِنَّمَا يَنْقُضُ بِالْبَيْعِ. او هغه به په خرڅولو سره نقد كيږي. |
|---|

**تشريح:** (ض)نضاً،نضيضاً،،الماء،، يعنى اوبه لږې لږې رابهيدل، يا څاسيدل.هم ددې نه دا هم دې.چه ﴿خذ ما نض لك من دينك أي تيسر و تحصل و نض ،، ماله﴾ يعنى مال مخكي اسباب وو.بيا د اخستلو خرڅولو په ذريعه نقد شو.هم ددې نه حديث د عكرمة﷫ كي دى. ﴿إذا أراد أن يفترقا يقتسمان ما نض بينهما من العين﴾ أهل حجاز به دراهمو او دنانيرو ته ناض وئيل.هم ددې نه په حديث دعمر﷜ كي دى. ﴿كان يأخذ الزكاة من ناض المال أي مما صار ورقا و عيناً بعد ان كان متاعا﴾ (لويديغ ، فائق)

| قَالَ (ثُمَّ لَا يَجُوزُ) بيا ددې په قيمت سره څه شئ اخستل جائز نه دى. أَنْ يَشْتَرِيَ بِثَمَنِهَا شَيْئًا آخَرَ) لِأَنَّ الْعَزْلَ إِنَّمَا لَمْ يَعْمَلْ ضَرُورَةَ مَعْرِفَةِ رَأْسِ الْمَالِ خكه چې معزوله كيدلو د راس المال پيژندلو د اړتيا په وجه خپل اثر نه دې كړې. وَقَدِ انْدَفَعَتْ حَيْثُ صَارَ نَقْدًا او په نقد كيدلو باندې دا اړتيا دفع شو. فَيَعْمَلُ الْعَزْلُ نو معزول كيدل به خل كار كوى. |
|---|

**تشريح:** هركله چې اسباب خرڅ كړى.او مال ( قيمت) نقد شو.نو اوس د اسبابو په قيمت بل څه شئ اخستل جائز نه دى.خكه چې د اسبابو خرڅولو اړتيا د راس المال د معرفت لپاره وو.په دې وجه معزول كيدلو اثر اونكړو.اود نقد كيدلو نه روسته دا اړتيا ختم شو.نواوس به معزول كيدل خپل اثر كوى.او روسته به اخستل جائز نه وى.

### د راس المال د نقديت په موجودګۍ كښې د معزول كولو په صورت كښې د تصرف حكم

| (فَإِنْ عَزَلَهُ) وكه په داسې حال كي ئې معزول كړو. وَرَأْسُ الْمَالِ دَرَاهِمُ أَوْ دَنَانِيرُ چې راس المال دراهم يا دنانير( نقد) دى. وَقَدْ نَضَّتْ لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَصَرَّفَ فِيهَا) نو اوس په دې كي تصرف كول جائز نه دى. لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي إِعْمَالِ عَزْلِهِ إِبْطَالُ حَقِّهِ فِي الرِّبْحِ خكه چې دده په عزل موثر كاوه كي دده د نفع د حق ابطال نه دې. فَلَا ضَرُورَةَ. نو هيڅ اړتيا نشته. |
|---|

**تشريح:** او كه رب المال مضارب په داسې حال كي معزول كړو.چه سامان خرڅ شوې وو.او واړه نقد شوې وو.نو په دې كي به مضارب ته د تصرف اختيار نه وى.خكه چې اوس دمعزول په موثر كيدلو كي د مضارب د حق باطل كيدل نه دى.نود تصرف هيڅ ضرورت نشته.

| قَالَ:علامه مرغينانى ﷫ فرمائى. وَهَذَا الَّذِي ذَكَرَهُ چې دا څه قدورى ذكر كړل.هغه وخت دى. إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِ رَأْسِ الْمَالِ،كله چې دا نقد مال د راس المال د جنس څخه وى. فَإِنْ لَمْ يَكُنْ كه دا نه وى. بِأَنْ كَانَ دَرَاهِمَ په دې طريقه چې نقد مال دراهم وى. وَرَأْسُ الْمَالِ دَنَانِيرَ او راس المال دنانير وى. أَوْ عَلَى الْقَلْبِ يا ددې عكس وى. لَهُ أَنْ يَبِيعَهَا بِجِنْسِ رَأْسِ الْمَالِ اسْتِحْسَانًا نو هغه دا استحساناً دجنس راس المال په عوض خرڅولې شى. لِأَنَّ الرِّبْحَ لَا يَظْهَرُ إِلَّا بِهِ خكه چې نفع به هم په دې طريقه ښكاره كيږى. وَصَارَ كَالْعُرُوضِ،او په دې حكم سره به دې په مرتبه د اسبابو څخه وى. |
|---|

**تشريح:** علامه مرغينانى ﷫ فرمائى.چه ذكر شوې حكم هغه وخت دې.چه كوم نقد مال موجود دې.هغه د راس المال دجنس څخه وى.په دې طريقه چې راس المال دراهم وو.او موجوده مال هم دراهم دى.يا راس المال دنانير وو.يا ددې عكس وى.يعنى موجوده مال دنانير دى.او راس المال دراهم وو.نو په دې صورت



كي مقتضاء د قياس هم داده.چه د مضارب تصرف جائز نه وى.خكه چې دراهمو او دنانيرو كي د ثمنيت په لحاظ سره مجانست ثابت دي. ﴿فصار كأن راس المال قد نض﴾ ،،خود استحسان په طور د مضارب تصرف جائز دي.او وجه د استحسان داده.چه د مضارب په ذمه د راس المال مثل واپس كول ضروري دى.اودا هغه وخت ممكن ده.كله چې هغه موجوده مال د جنس راس المال په عوض خرڅ كړى.نو مضارب موجوده نقد مال د جنس راس المال په عوض خرڅولې شى.خكه چې نفع به هم په دې طريقه ښكاره كيږى.نو په دې حكم كي دا نقد هم په مرتبه د اسبابو ( اود مال) شو.

| وَعَلَى هَذَا مَوْتُ رَبِّ الْمَالِ او هم په دې حكم دې.د رب المال مړكيدل،د اسباب وغيره په خرڅولو كي. وَلُحُوقُهُ بَعْدَ الرِّدَّةِ فِي بَيْعِ الْعُرُوضِ وَنَحْوِهَا |
|---|

**تشريح:** په موجوده نسخه كي خو صرف دادى.چه ﴿و على هذا موت رب المال في بيع العروض و نحوها﴾ او په بعضو نسخو كي عبارت داسې دې. ﴿و على هذا موت رب المال و لحوقه بعد الردة﴾ نو په لفظ د هذا سره ﴿لا يعمل العزل﴾ اړخ ته اشاره ده.او لفظ د مرګ مبتداء ( موخر) كيدلو په وجه مرفوع دې.او ،،على هذا،، خبر مقدم دې.او لفظ د ،، نحوها،، عروض باندې معطوف كيدلو په وجه مجرور دې.او ،،ها،، ضمير عروض اړخ ته راجع دې.او په نحو عروض سره مراد دادې.چه راس المال نقد دراهم او نقد مال دنانير وى.يا ددې په عكس وى.اكثر شارحينو دا مقام هم دغه ډول حل كړې دې.مطلب دادې كه رب المال مړشى.( يا مرتد شى او دارالحرب ته لاړ شى ) او په مال مضاربت كي اسباب او ددې پشان مال موجود وى.نو ددې حكم هم په دغه قياس دې.يعنى د مضارب معزول كيدل به دده د بيع نه مانع نه وى بلكه د اسبابو خرڅول يا موجوده نقد جنس راس المال سره بدلولو كي به ده ته اختيار وى.

**تنبيه**﴿ صاحب د غايه ﷫ فرمائى.چه د ،،و نحوها،، نه مراد دادې.چه رب المال مرتد شى.او دارالحرب ته لاړ شى.يا په مرتد كيدلو باندې قتل كړې شو.يا د مرتدكيدلو په حالت كي مړ شو.بيا مضارب سامان خرڅ كړو.نود مضاربت په معامله باندې دده دا خرڅول جائز دى.نود ،،نحو،، ضمير د رب المال مرګ اړخ ته په تاويل د منية راجع دې.نو ،، نحوها،، په رفع د واؤ سره وئيل پكار دى.خو په قول د صاحب د نتائج ﷫ دا تاويل لفظى حيثيت سره هم لرې دې.او د معنى په حيثيت سره هم خلل انداز كيږى.چه دا د ،،و لحوقه بعد الردة،، والا نسخې باندې خو ښكاره دې.خكه چې ،،نحو موت،، لحوق دارالحرب دې.كوم چې په دې نسخه كي صراحت سره ذكر دې.نو ددې نه روسته د ونحو الموت وئيلو د سره موقع نه ده.پاتې شوه موجوده نسخه،نو په دې باندې د ښكاره كاوه وجه داده.چه د ونحوها مراد كي موصوف مرګ پخپله راداخل كړې دې.نود مرګ نحو مرګ كيدل لازم شو.اودا باطل دى.بيا موصوف وئيلى دى.چه دا هم جائز دى.چه د ونحوها ضمير د سامان بيع اړخ ته په تاويل سره راجع وى.چه مضاف ته د مؤنث حكم وركړې شو.په دې اعتبار چې ددې اضافت مؤنث اړخ ته دې. ﴿كما في قوله: كما شرقت صدر القناة من الدم﴾ په دې صورت كي به ،،نحوها،، په جر د واؤ سره وى.خودا تاويل هم معنوى حيثيت سره بالكل كمزورې دې.خكه دې سره دا وهم كيږى.چه د رب المال د مرګ نه روسته په مال مضاربت كي د بيع او سامان پشان مضارب لپاره بل تصرف جائز دې.حالانكه داسې نه ده.

### د رب المال او مضارب جداكيدلو بيان

| قَالَ (وَإِذَا افْتَرَقَا كه دواړه جلا شو. وَفِي الْمَالِ دُيُونٌ په داسې حال كي چې مال كي پور وى. وَقَدْ رَبِحَ الْمُضَارِبُ فِيهِ او مضارب په دې كي نفع حاصله كړله. أَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ عَلَى اقْتِضَاءِ الدُّيُونِ) نو قاضى به مضارب ددې قرضونو په طلب كاوه باندې مجبوره كوى. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْأَجِيرِ خكه چې مضارب د اجير په مرتبه كي دې. وَالرِّبْحُ كَالْأَجْرِ لَهُ. او نفع مثل دده د اجرت ده. (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ رِبْحٌ لَمْ يَلْزَمْهُ الِاقْتِضَاءُ) او كه مضارب لپاره نفع نه وى.نوده باندې تقاضا كول لازم نه دى. لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مَحْضٌ خكه چې هغه خو توكيل محض دې. |
|---|

وی.او مضارب ته په تجارت کي نفع حاصل شوې وی.نو مضارب به د قرضدارانو نه په پور وصولولو باندې مجبوره کولې شی.خکه چې مضارب د اجیر پشان دې.او نفع د اجرت پشان ده.نو دې به په عمل پوره کولو باندې مجبوره کولې شی.او که ده ته نفع حاصل نشوه.نودې به نشی مجبوره کولې.خکه چې دې صورت کي مضارب متبرع او محسن دې.او متبرع باندې جبر نشی کیدلې.بلکه ده ته به دا وئیلی شی.چه ته د پور وصولولو لپاره رب المال وکیل جوړ کړه.چه د هغه حق ضائع نشی.خکه چې کوم سړې د کومې معاملې عقد کوی.د هغه معاملې حقوق هم دې عاقد طرف ته راجع کیږی.نو دده وکیل جوړول یا وکالت قبلول ضروری دی.چه د مالك حق ضائع نشی.

وَالْمُتَبَرِّعُ لَا يُجْبَرُ عَلَى إِيفَاءِ مَا تَبَرَّعَ بِهِ،او احسان کونکې ددې په پوره کاوه باندې نشی مجبوره کولې.د کوم چې ده احسان کړې دې.(وَيُقَالُ لَهُ) و مضارب ته به وئیلی شی.وَكِّلْ رَبَّ الْمَالِ فِي الْاِقْتِضَاءِ) چې تقاضی لپاره رب المال وکیل کړې.لِأَنَّ حُقُوقَ الْعَقْدِ تَرْجِعُ إِلَى الْعَاقِدِ،خکه چې د عقد حقوق عاقد ارخ ته راجع کیږی.فَلَا بُدَّ مِنْ تَوْكِيلِهِ وَتَوَكُّلِهِ نود هغه وکیل کول یا وکالت قبلول ضروری دی.كَيْ لَا يَضِيعَ حَقُّهُ. چې د مالك حق ضائع نشی.

تشریح: په دې باندې دا اعتراض کیږی.چه مضارب په کوم صفت باندې راس المال اخستې وو.هم هغه صفت باندې ددغه مال واپس کول دده په ذمه لازم دی.نو په وصولولو مجبوره کول پکار دی.ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.چه مضارب به په تقاضې باندې مجبوره کولې شی.چه د اخستې شوی د مثل واپسی اوشی.کومه چې دده په ذمه واجب ده.اودا به هغه وخت کیږی.کله چې دې طلب اوکړی.او وصول ئې کړی.﴿و ما لا يتم الواجب إلا به فهو واجب﴾؟

جواب: د مضارب په ذمه واپس کول ضروری نه دی.بلکه صرف خپله قبضه اوچتول ضروری دی.لکه څنګه چې د مودع په ذمه هم صرف داوی.او هرکله چې ده د دین د وصولولو وکیل جوړ کړو.نو خپله قبضه ئې اوچته کړله.

سوال: دا وئیل چې متبرع باندې جبر(او زبردستی) نشی کولې.کفیل سره ماتیږی.چه کفیل هم متبرع وی.خو هغه په ایفاء د عهد باندې مجبوره کولې شی؟

خواب: دلته د متبرع نه مراد متبرع غیر ملتزم دې.او کفیل متبرع ملتزم وی.یا په نورو الفاظو سره داسې چې متبرع په عقود غیرلازمه کي نشی مجبوره کولې.او کفالت عقد لازم دې.اوکه اطلاق اومنو.نو دلته کلام د موجب قیاس مطابق دې.اود کفیل ضامن کیدل، د نص په ذریعه ثابت دی.او هغه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.﴿الزعيم غارم فلا ضير في خروجه إذا القياس ترك فيه بالنص﴾

وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: يُقَالُ لَهُ أَحِلْ مَكَانَ قَوْلِهِ وَكِّلْ،جامع صغیر کي د،،وکل،،په خائې،،احل،، دې.وَالْمُرَادُ مِنْهُ الْوَكَالَةُ او ددې نه مراد وکالت دې.

تشریح: په جامع صغیر کي د،،وکیل،، په خائې د،،احل،، لفظ راغلې دې.چه دا د ﴿أحال الغريم بدينه على آخر إحالة﴾ نه امرحاضر دې.په معنی د پور بل ته دحواله کولو،خو دلته د حواله نه مراد په طریقې د استعارې وکالت دې.او وجه د استعارې د جواز معنی نقل باندې مشتمل کیدل دی.علامه مرغینانی رحمه الله دا تفسیر څکه کړې دې.چه د لفظ احل نه دا وهم کیدای شی.چه راس المال د مضارب په ذمه دین دې.حالانکه داسې نه ده. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.چه په بیاع او دلال باندې هم دا حکم دې.چه کله وکیل د بیع تقاضا نه انکار اوکړی.نو دې نشی مجبوره کولې.البته په دې به ضرور مجبوره کولې شی.چه دې موکل د مشتری نه د ثمن [illegible] وکیل کړی.چه هغه ئې وصول کړې شی.



وَعَلَى هَذَا سَائِرُ الْوَكَالَاتِ او واړه و کالتونه په دې حکم باندې دی.وَالْبَيَّاعُ وَالسِّمْسَارُ يُجْبَرَانِ عَلَى التَّقَاضِي او دلال او سمسار(دواړه الفاظ مترادفه دی ) دواړه به تقاضی باندې مجبوره کولې شی.لِأَنَّهُمَا يَعْمَلَانِ بِأَجْرٍ عَادَةً خکه چې دوی دواړه په عامه توګه (عام طور) په اجرت باندې کار کوی.

تشریح: مبسوط کي دی.چه سمسار هغه ته وائی.کوم چې د بل لپاره اجرت باندې اخستل خرڅول کوی.علامه عینی رحمه الله په بنایه کي فرمائی.چه په دې صورت کي د بیاع او دلال په منځ کي توپیر نه پاتې کیږی.خکه چې بیاع او دلال هم دې ته وائی.( په ردالمختار کي هم یو خائې دادی.چه سمسار او دلال کي هیڅ توپیر نشته) حالانکه اهل لغت په دې کي داسې توپیر کړې دې.چه بیاع او دلال هغه کس ته وائی.کوم چې په اجرت باندې اخستل خرڅول کوی.او سمسار هغې کس ته وائی.کوم چې د بائع او مشتری په منځ کي سفیر محض وی.په قاموس کي د سمسار او دلال تفسیر په ﴿المتوسط بين البائع و المشتري﴾ سره کړې دې.اود بعضو په قول دلال هغه دې.چاته چې مالك د خرڅولو لپاره مال ورکړې وی.او سمسار هغه کس ته وائی.چا سره چې مال نه وی.خو هغه مشتری لټون کړی.او راتې ولی.د اعشی شعر دې.

لعمنا زماناً و ما بيننا رسول يراجع أخبار ها

و اصبحت لا استطيع سوى أن أراجع سمسارها

بعض فقهاؤ په سمسار او دلال کي داسې توپیر کړې دې.چه سمسار هغه کس ته وائی.څوك چې د سامان خائې اود هغه د مالك پته اوښائی.او دلال هغه دې.کوم چې زیات وختونو کي سامان سره وی.

## د مضاربت په مال کښې د مال هلاکیدلو حکم

قَالَ (وَمَا هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ) کوم څه چې د مضاربت د مال نه هلاك شی.فَهُوَ مِنَ الرِّبْحِ نو هغه به د نفع نه هلاك وی.(دُونَ رَأْسِ الْمَالِ) د اصل رقم څخه به ( هلاك) نه وی.

تشریح: که د مال مضاربت څه برخه ضائع شی.نودا به دنفع نه جداکولې شی.په دې سلسله کي اصل دادې.چه رب المال ته د راس المال رسیدلو نه وړاندې نفع نه ښکاره کیږی.صاحب د عنایه او علامه زیلعی رحمهما الله په دې اړه کي دا حدیث نقل کړې دې. ﴿قال النبي ﷺ مثل المؤمن كمثل التاجر لا يسلم ربحه حتى يسلم له رأس ماله فكذا المؤمن لا يسلم له نوافله حتى تسلم له عزائمه ( أو قال فرائضه)﴾،، نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلې دې.چه د مؤمن مثال داسې دې.لکه سوداګر چې دده نفع صحیح سلامت نه وی.ترکومه چې دده اصل نفع صحیح سلامت نه وی.نو هم دغه شان مؤمن دې.چه دده نوافل صحیح سلامت نه وی.ترکومه پورې چې دده فرائض صحیح سلامت نه وی،،

لِأَنَّ الرِّبْحَ تَابِعٌ وَصَرْفُ الْهَلَاكِ إِلَى مَا هُوَ التَّبَعُ أَوْلَى خکه چې نفع تابع ده.او هلاکت داسې شی ارخ ته ګرځول زیات بهتر دی.کوم چې تابع وی.كَمَا يُصْرَفُ الْهَلَاكُ إِلَى الْعَفْوِ فِي الزَّكَاةِ لکه څنګه چې د زکاة په نصاب کي هلاکت د عفو برخې (حصې) ارخ ته ګرځولې شی.

تشریح: هلاکت د نفع نه د حسابولو دلیل دادې.چه راس المال اصل دې.او نفع تابع ده.خکه چې د راس المال وجود د نفع نه بغیر ممکن اومتصور دې.خو ددې عکس ممکن نه دې.اود اصل د حصول نه وړاندې د تابع هیڅ اعتبار نه کیږی.نو هرکله چې د اصل نه څه ضائع شو.نو ددې تکمیل به په تابع سره کولې شی.او هلاکت به تابع ارخ ته ګرځولې شی. ﴿لاستحالة بقائه بدون الأصل﴾ لکه چې په نصاب د زکاة کي د شیخینو رحمهما الله په نیز هلاکت د عفو مقدار ارخ ته راجع کولې شی.

(فَإِنْ زَادَ الْهَالِكُ عَلَى الرِّبْحِ) که هلاك شوې مال د نفع نه زیات شی.فَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُضَارِبِ) نو مضارب باندې به تاوان نه وی.لِأَنَّهُ أَمِينٌ خکه چې هغه خو امانتدار وو.

**تشریح:** اوکه دومره مال هلاك شي.چه د نفع نه هم زيات وي.نو په مضارب به ددې هيڅ تاوان نه وي.ځکه چې هغه امين دې.نو ضامن نشي کيدلې.ځکه چې په شئ واحد کې ددې دواړو په منځ کې منافات دي.

(وَإِنْ كَانَا يَقْتَسِمَانِ الرِّبْحَ) و که دوی دواړه نفع تقسيموی. وَالْمُضَارَبَةُ بِحَالِهَا حالانکه مضاربت پخپل حال پاته پاتې شی. ثُمَّ هَلَكَ الْمَالُ بَعْضُهُ أَوْ كُلُّهُ بيا بعض يا واړه مال هلاك شو. تَرَادَّا الرِّبْحَ نو دواړه به نفع واپس کوی. حَتَّى يَسْتَوْفِيَ رَبُّ الْمَالِ رَأْسَ الْمَالِ) ترڅو چې مالك پوره رقم وصول کړی. لِأَنَّ قِسْمَةَ الرِّبْحِ لَا تَصِحُّ قَبْلَ اسْتِيفَاءِ رَأْسِ الْمَالِ ځکه چې د نفع تقسيمول نه صحيح کيږی.د رقم وصولولو نه وړاندې. لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ ځکه چې رقم اصل دې. وَهَذَا بِنَاءٌ عَلَيْهِ وَتَبَعٌ لَهُ،او نفع په دې باندې مبنی او ددې تابع ده. فَإِذَا هَلَكَ مَا فِي يَدِ الْمُضَارِبِ أَمَانَةً نو هرکله چې ضائع شو هغه مال،کوم چې د مضارب په قبضه کې امانت وو وَتَبَيَّنَ أَنَّ مَا اسْتَوْفَيَاهُ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ.نو ښکاره شوه.چه کوم څه ده وصول کړی دی.هغه د رقم ځني دې. فَيَضْمَنُ الْمُضَارِبُ مَا اسْتَوْفَاهُ نو مضارب به ضامن وی.د هغه مال کوم چې ده وصول کړې دې. لِأَنَّهُ أَخَذَهُ لِنَفْسِهِ ځکه چې دا هغه د خپل ذات لپاره اخستې دې. وَمَا أَخَذَهُ رَبُّ الْمَالِ مَحْسُوبٌ مِنْ رَأْسِ مَالِهِ او کوم څه چې مالك واخستل.هغه د هغه په رقم کې حسابيږی. (وَإِذَا اسْتَوْفَى رَأْسَ الْمَالِ) و هرکله چې مالك پوره رقم وصول کړی. فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ بيا که څه بچ پاتی شو. كَانَ بَيْنَهُمَا نو هغه به په دوی کې مشترك وی. لِأَنَّهُ رِبْحٌ ځکه چې دا نفع ده. وَإِنْ نَقَصَ و که کمې اوشو. فَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُضَارِبِ) لِمَا بَيَّنَّا نو مضارب باندې به تاوان نه وی.په هغه وجه کوم چې موږ بيان کړله. قَالَ (وَمَا هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ فَهُوَ مِنَ الرِّبْحِ الخ) الْأَصْلُ فِي هَذَا أَنَّ الرِّبْحَ لَا يَتَبَيَّنُ قَبْلَ وُصُولِ رَأْسِ الْمَالِ إِلَى رَبِّ الْمَالِ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ التَّاجِرِ لَا يَسْلَمُ لَهُ رِبْحُهُ حَتَّى يَسْلَمَ لَهُ رَأْسُ مَالِهِ} فَكَذَلِكَ الْمُؤْمِنُ لَا يَسْلَمُ لَهُ نَوَافِلُهُ حَتَّى تَسْلَمَ لَهُ عَزَائِمُهُ، أَوْ قَالَ فَرَائِضُهُ، وَلِأَنَّ رَأْسَ الْمَالِ أَصْلٌ وَالرِّبْحُ تَبَعٌ، وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّبَعِ قَبْلَ حُصُولِ الْأَصْلِ، فَمَتَى هَلَكَ مِنْهُ شَيْءٌ أُسْتُكْمِلَ مِنَ التَّبَعِ، فَإِذَا زَادَ الْهَلَاكُ عَلَى الرِّبْحِ فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ أَمِينٌ، وَإِنِ اقْتَسَمَاهُ تَرَادَّا لِأَنَّ الْقِسْمَةَ تُفِيدُ مِلْكًا مَوْقُوفًا إِنْ بَقِيَ مَا أُعِدَّ إِلَى رَأْسِ الْمَالِ إِلَى وَقْتِ الْفَسْخِ كَانَ مَا أَخَذَهُ كُلٌّ مِنْهُ مِلْكًا لَهُ، وَإِنْ هَلَكَ بَطَلَتِ الْقِسْمَةُ وَتَبَيَّنَ أَنَّ الْمَقْسُومَ رَأْسُ الْمَالِ

**تشریح:** که رب المال او مضارب عقد مضاربت پاته ساتی.او نفع تقسيموی.بيا بعض مال يا پوره مال ضائع شو.نو نفع به واپس کولې شی.او راس المال به پوره کولې شی.ځکه چې د راس المال وصولولو نه وړاندې نفع تقسيمول نه صحيح کيږی.ددې مطلب دادې.چه د قسمت او وېش نه وړاندې د ملك موقوف فائده کيږی.يعنی کوم څه چې راس المال لپاره اوښکلې شوې دې.که هغه د فسخ په وخت پاته پاتې شی.نو په دې کې چې هر يوکس کوم څه اخستی دی.هغه به دهغه ملك شی.ګنی قسمت به باطل وی.

۞ نو هرکله چې هغه مال ضائع شو.کوم چې مضارب سره د امانت په طور وو.نودا ښکاره شوه.چه کوم څه رب المال او مضارب خپل منځ کې ويش سره وصول کړې وو.هغه د راس المال او اصل رقم ځني نه دې.د نفع نه نه دې.ځکه چې د اصل نه بغير د تابع پاته پاتې کيدل غيرمتصور دی.نو مضارب چې کوم څه د نفع په خيال باندې وصول کړی دی.هغه به ددې ضامن وی.ځکه چې ده دا د راس المال دحصې نه خپل ذات لپاره واخستل.او کوم څه چې رب المال وصول کړی دی.هغه به دهغه په راس المال کې حسابولې شی.

۞ ددې مسئلې مثال دادې.چه د يوسړی انتقال اوشو.چه دده په ذمه څه پور دې.او دده څه ترکه هم شته.وارثانو د ترکې نه د پور په اندازه مال جلا کړو.او پاته ئې دخپلو برخو مطابق ويش کړو.ددې نه روسته هغه مال کوم ئې چې د قرضونو لپاره جلا کړې وو.هلاك شو.نود وارثانو ويش به باطل وی.اود پور ادا کاوه لپاره به ترکه واپس کول ضروری وی.او که وارثانو کې دده څوك قرضخواه هم وی.نو د هغه د پور برخه به حسابولې شی. ﴿لأن الورثة لا يسلم لهم شئ إلا بعد قضاء الدين﴾ ( تبين )

فائده۞ مبسوط کې دی.چه مضارب ته دوې (دوه) زره روپۍ نفع وی.او رب المال خپل زر روپۍ راس المال



او مضارب د نفع نه خپله برخه يعنی زر روپۍ وصول کړلې.رب المال خپله نفع وانخستله.ترڅو چې هغه هلاك شو.نو مضارب چې څومره نفع اخستې وه.هغه به ددې نصف واپس کوی.ځکه چې رب المال ترکومه پورې مال وانخلی.په مضاربت باندې پاته پاتې وی.نو نفع ګويا د مضارب په قبضه کې پاتې شوه.اوکه هغه مال هلاك شی.کوم چې مضارب اخستې وو.نودا به هم د هغه د مال نه هلاك وی.ځکه چې هغه خپل حق وصول کړې دې.او مضاربت نه وتلې دې.او اصل په دې کې هم دادې.چه مضارب کوم مال د خان لپاره واخلی.هغه دده په ضمان کې داخليږی.اوکوم چې رب المال وانخستلو.هغه به مضاربت باندې پاته پاتې کيږی.

(وَلَوِ اقْتَسَمَا الرِّبْحَ) و که دواړو نفع ويش کړله. وَفَسَخَا الْمُضَارَبَةَ و مضاربت ئې مات کړو. ثُمَّ عَقَدَاهَا ددې نه روسته ئې بيا عقد مضاربت اوکړو. فَهَلَكَ الْمَالُ و مال هلاك شو. لَمْ يَتَرَادَّا الرِّبْحَ الْأَوَّلَ) نو ړومبۍ نفع به نشی واپس کولې. لِأَنَّ الْمُضَارَبَةَ الْأُولَى قَدِ انْتَهَتْ ځکه چې ړومبې مضاربت پوره شو. وَالثَّانِيَةَ عَقْدٌ جَدِيدٌ،او دوهم مضاربت نوې عقد دې. وَهَلَاكُ الْمَالِ فِي الثَّانِي لَا يُوجِبُ انْتِقَاضَ الْأَوَّلِ نو په دوهم مضاربت کې د مال تباه کيدل د ړومبی مضاربت ماتيدل نه واجبوی. كَمَا إِذَا دَفَعَ إِلَيْهِ مَالًا آخَرَ لکه که مضارب نور مال ورکړې وی.

**تشریح:** اوکه د نفع تقسيمولو نه روسته ئې عقد مضاربت فسخ کړو.ددې نه روسته ئې د سره بيا مضاربت اوکړو.او مال هلاك شو.نو اوس به مخکنۍ نفع نشی واپس کولې.ځکه چې ړومبې عقد مضاربت پوره شوې دې.او دوهم جديد عقد دې.نو په دوهم مضاربت کې د مال ضائع کيدل ددې مقتضی نه دی.چه د ړومبی مضاربت ويش مات شی.

## فَصْلٌ فِيمَا يَفْعَلُهُ الْمُضَارِبُ)

ژباړه: (دا) فصل د هغه افعالو (په بيان کې) دې.کوم چې مضارب کوی.

د مضارب د افعالو اود تصرف د جواز او عدم جواز په سلسله کې اصل کلی دادې.چه کوم امور هرلحاظ سره تجارت دې.مضارب د هغې مالك وی.دغه ډول کوم امور چې د تجارت د قبيلې ځني نه وی.خو هغه تاجرانو لپاره ضروری وی.د داسې امورو اختيار هم وی.خو کوم امور چې په هيڅ لحاظ سره هم تجارت نه وی.يا من وجه تجارت وی.اود تاجرانو د طريقې (اوعادت) ځني نه وی.د هغې اختيار نه وی.

### مضارب لپاره په نقد او پور سره د اخستلو او خرڅولو حکم

قَالَ فرمائی. (وَيَجُوزُ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَبِيعَ بِالنَّقْدِ وَالنَّسِيئَةِ) چې جائز دی مضارب لپاره دا خرڅ کړی.او واخلی په نقد او قرضو، لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ ځکه چې دا هرڅه د تاجرانو(او سوداګرو) د طريقې (او د افعالو ځني دی. فَيَنْتَظِمُهُ إِطْلَاقُ الْعَقْدِ نو عقد اطلاق به دې ته ګډ وی.

**تشریح:** ددې اصل په لحاظ زموږ په نيز مضارب لپاره نقد يا پور چې څنګه مناسب اوګنړی.د اخستلو خرڅولو اختيار دې.په يو روايت کې امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې.امام شافعی ،امام مالك، ابن ابی ليلی رحمهم الله او په دوهم روايت کې امام احمد رحمه الله فرمائی.چه د مالك د اجازت نه بغير پور خرڅول جائز نه دی.ځکه چې دا د رب المال د مقصود ضد دې. ﴿لأنه يوجب قصر يده على المال و التصرف فيه﴾ په دې وجه د بيع بالنسيئة اعتبار ثلث نه کيږی.

۞ زموږ دليل دادې.چه دا د تاجرانو د طريقې ځني ده.کوم چې ددوی عادت دې.نو اطلاق د عقد به دې ته ضرور ګډ وی.ځکه چې پور خرڅول هم تجارت مطلقه دې.په دليل د قول د الله تعالی چه ﴿إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ﴾ ددې آيت نه معلومه شوه.چه تجارت کله غائب هم وی. ﴿وليس ذالك إلا البيع بالنسيئة﴾

### په مقرر ميعاد سره د خرڅولو حکم

تشريح: اوكه دومره مال هلاك شي.چه د نفع نه هم زيات وي.نو په مضارب به ددې هيڅ تاوان نه وي.ځكه چې هغه امين دې.نو ضامن نشي كيدلې.ځكه چې په شئ واحد كې ددې دوارو په منځ كې منافات دې.

(وَإِنْ كَانَا يَقْتَسِمَانِ الرِّبْحَ او كه دوى دواړه نفع تقسيموى. وَالْمُضَارَبَةُ بِحَالِهَا حالانكه مضاربت پخپل حال پاته پاتې شي. ثُمَّ هَلَكَ الْمَالُ بَعْضُهُ أَوْ كُلُّهُ بيا بعض يا واړه مال هلاك شو. تَرَادَّا الرِّبْحَ نو دواړه به نفع واپس كوى. حَتَّى يَسْتَوْفِيَ رَبُّ الْمَالِ رَأْسَ الْمَالِ) تردې چې مالك پوره رقم وصول كړي. لِأَنَّ قِسْمَةَ الرِّبْحِ لَا تَصِحُّ قَبْلَ اسْتِيفَاءِ رَأْسِ الْمَالِ ځكه چې د نفع تقسيمول نه صحيح كيږي.د رقم وصولولو نه وړاندې. لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ ځكه چې رقم اصل دې. وَهَذَا بِنَاءٌ عَلَيْهِ وَتَبَعٌ لَهُ، او نفع په دې باندې مبنى او ددې تابع ده. فَإِذَا هَلَكَ مَا فِي يَدِ الْمُضَارِبِ أَمَانَةً نو هركله چې ضائع شو هغه مال،كوم چې د مضارب په قبضه كې امانت وو تَبَيَّنَ أَنَّ مَا اسْتَوْفَيَاهُ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ،نو ښكاره شوه.چه كوم څه ده وصول كړي دى.هغه د رقم ځني دې. فَيَضْمَنُ الْمُضَارِبُ مَا اسْتَوْفَاهُ نو مضارب به ضامن وى.د هغه مال كوم چې ده وصول كړي دې. لِأَنَّهُ أَخَذَهُ لِنَفْسِهِ ځكه چې دا هغه د خپل ذات لپاره اخستې دې. وَمَا أَخَذَهُ رَبُّ الْمَالِ مَحْسُوبٌ مِنْ رَأْسِ مَالِهِ او كوم څه چې مالك واخستل.هغه د هغه په رقم كې حسابيږي. (وَإِذَا اسْتَوْفَى رَأْسَ الْمَالِ،) او هركله چې مالك پوره رقم وصول كړي. فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ بيا كه څه بچ پاتې شو. كَانَ بَيْنَهُمَا نو هغه به په دوى كې مشترك وى. لِأَنَّهُ رِبْحٌ ځكه چې دا نفع ده. وَإِنْ نَقَصَ او كه كمې اوشو. فَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُضَارِبِ) لِمَا بَيَّنَّا نو مضارب باندې به تاوان نه وى.په هغه وجه كوم چې موږ بيان كړله.قَالَ (وَمَا هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ فَهُوَ مِنَ الرِّبْحِ الخ) الْأَصْلُ فِي هَذَا أَنَّ الرِّبْحَ لَا يَتَبَيَّنُ قَبْلَ وُصُولِ رَأْسِ الْمَالِ إِلَى رَبِّ الْمَالِ. قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ التَّاجِرِ لَا يَسْلَمُ لَهُ رِبْحُهُ حَتَّى يَسْلَمَ لَهُ رَأْسُ مَالِهِ} فَكَذَا الْمُؤْمِنُ لَا يَسْلَمُ لَهُ نَوَافِلُهُ حَتَّى تَسْلَمَ لَهُ عَزَائِمُهُ، أَوْ قَالَ فَرَائِضُهُ، وَلِأَنَّ رَأْسَ الْمَالِ أَصْلٌ وَالرِّبْحُ تَبَعٌ، وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّبَعِ قَبْلَ حُصُولِ الْأَصْلِ، فَمَتَى هَلَكَ مِنْهُ شَيْءٌ أُسْتُكْمِلَ مِنَ التَّبَعِ، فَإِذَا زَادَ الْهَلَاكُ عَلَى الرِّبْحِ فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ أَمِينٌ، وَإِنْ اقْتَسَمَاهُ تَرَادَّا لِأَنَّ الْقِسْمَةَ تُفِيدُ مِلْكًا مَوْقُوفًا إِنْ بَقِيَ مَا أُعِدَّ إِلَى رَأْسِ الْمَالِ إِلَى وَقْتِ الْفَسْخِ كَانَ مَا أَخَذَهُ كُلٌّ مِنْهُ مِلْكًا لَهُ، وَإِنْ هَلَكَ بَطَلَتِ الْقِسْمَةُ وَتَبَيَّنَ أَنَّ الْمَقْسُومَ رَأْسُ الْمَالِ

تشريح: كه رب المال او مضارب عقد مضاربت پاته ساتي.او نفع تقسيموى.بيا بعض مال يا پوره مال ضائع شو.نو نفع به واپس كولې شي.او راس المال به پوره كولې شى.ځكه چې د راس المال وصولولو نه وړاندې نفع تقسيمول نه صحيح كيږي.ددې مطلب دادې.چه د قسمت او ويش نه وړاندې د ملك موقوف فائده كيږي.يعنى كوم څه چې راس المال لپاره اوښكلې شوې دې.كه هغه د فسخ په وخت پاته پاتې شى.نو په دې كې چې هر يوكس كوم څه اخستى دى.هغه به دهغه ملك شي.ګنى قسمت به باطل وى.

ﷲ نو هركله چې هغه مال ضائع شو.كوم چې مضارب سره د امانت په طور وو.نو دا ښكاره شوه.چه كوم څه رب المال او مضارب خپل منځ كې ويش سره وصول كړې وو.هغه د راس المال او اصل رقم ځني نه دې.د نفع نه نه دې.ځكه چې د اصل نه بغير د تابع پاته پاتې كيدل غيرمتصور دى.نو مضارب چې كوم څه د نفع په خيال باندې وصول كړي دى.هغه به ددې ضامن وى.ځكه چې ده دا د راس المال دحصې نه خپل ذات لپاره واخستل.او كوم څه چې رب المال وصول كړي دى.هغه به دهغه په راس المال كې حسابولوې شى.

ﷲ ددې مسئلې مثال دادې.چه د يوسړي انتقال اوشو.چه ده په ذمه څه پور دې.او دده څه تركه هم شته.وارثانو د تركې نه د پور په اندازه مال جلا كړو.او پاته ئې دخپلو برخو مطابق ويش كړو.ددې نه روسته هغه مال كوم ئې چې د قرضونو لپاره جلا كړې وو.هلاك شو.نود وارثانو ويش به باطل وى.اود پور ادا كاوه لپاره به تركه واپس كول ضرورى وى.او كه وارثانو كې دده څوك قرضخواه هم وى.نو د هغه د پور برخه به حسابولې شي. ﴿لأن الورثة لا يسلم لهم شئ إلا بعد قضاء الدين﴾ ( تبين)

فائده◎ مبسوط كې دى.چه مضارب ته دوې (دوه) زره روپئ نفع وى.او رب المال خپل زر روپئ راس المال



او مضارب د نفع نه خپله برخه يعنى زر روپئ وصول كړلې.رب المال خپله نفع وانخستله.تردې چې هغه هلاك شو.نو مضارب چې څومره نفع اخستې وه.هغه به ددې نصف واپس كوى.ځكه چې رب المال تركومه پورې مال وانخلى.په مضاربت باندې پاته پاتې وى.نو نفع ګويا د مضارب په قبضه كې پاتې شوه.اوكه هغه مال هلاك شى.كوم چې مضارب اخستې وو.نودا به هم د هغه د مال نه هلاك وى.ځكه چې هغه خپل حق وصول كړې دې.او مضاربت نه وتلې دې.او اصل په دې كې هم دادې.چه مضارب كوم مال د خان لپاره واخلى.هغه دده په ضمان كې داخليږي.اوكوم چې رب المال وانخستلو.هغه په مضاربت باندې پاته پاتې كيږي.

(وَلَوْ اقْتَسَمَا الرِّبْحَ او كه دواړو نفع ويش كړله. وَفَسَخَا الْمُضَارَبَةَ او مضاربت ئې مات كړو. ثُمَّ عَقَدَاهَا ددې نه روسته ئې بيا عقد مضاربت اوكړو. فَهَلَكَ الْمَالُ او مال هلاك شو. لَمْ يَتَرَادَّا الرِّبْحَ الْأَوَّلَ) نو ړومبئ نفع به نشي واپس كولې. لِأَنَّ الْمُضَارَبَةَ الْأُولَى قَدِ انْتَهَتْ ځكه چې ړومبې مضاربت پوره شو. وَالثَّانِيَةُ عَقْدٌ جَدِيدٌ، او دوهم مضاربت نوې عقد دې. وَهَلَاكُ الْمَالِ فِي الثَّانِي لَا يُوجِبُ انْتِقَاضَ الْأَوَّلِ نو په دوهم مضاربت كې د مال تباه كيدل د ړومبى مضاربت ماتيدل نه واجبوى. كَمَا إِذَا دَفَعَ إِلَيْهِ مَالًا آخَرَ لكه كه مضارب نور مال وركړې وى.

تشريح: اوكه د نفع تقسيمولو نه روسته ئې عقد مضاربت فسخ كړو.ددې نه روسته ئې د سره بيا مضاربت اوكړو.او مال هلاك شو.نو اوس به مخكنئ نفع نشي واپس كولې.ځكه چې ړومبې عقد مضاربت پوره شوې دې.او دوهم جديد عقد دې.نو په دوهم مضاربت كې د مال ضائع كيدل ددې مقتضى نه دى.چه د ړومبى مضاربت ويش مات شي.

## فَصْلٌ فِيمَا يَفْعَلُهُ الْمُضَارِبُ)

ژباړه: (دا) فصل د هغه افعالو (په بيان كې) دې.كوم چې مضارب كوى.

د مضارب د افعالو اود تصرف د جواز او عدم جواز په سلسله كې اصل كلى دادې.چه كوم امور هرلحاظ سره تجارت دې.مضارب د هغې مالك وى.دغه ډول كوم امور چې د تجارت د قبيلې ځني نه وى.خو هغه تاجرانو لپاره ضرورى وى.د داسې امورو اختيار هم وى.خو كوم امور چې په هيڅ لحاظ سره هم تجارت نه وى.يا من وجه تجارت وى.اود تاجرانو د طريقې (اوعادت) ځني نه وى.د هغې اختيار نه وى.

**مضارب لپاره په نقد او پور سره د اخستلو او خرڅولو حكم**

قَالَ فرمائى. (وَيَجُوزُ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَبِيعَ بِالنَّقْدِ وَالنَّسِيئَةِ) چې جائز دى مضارب لپاره دا خرڅ كړي.او واخلى.په نقد او قرضو. لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ ځكه چې دا هرڅه د تاجرانو(او سوداګرو) د طريقې (او د افعالو) ځني دى. فَيَنْتَظِمُهُ إِطْلَاقُ الْعَقْدِ نو عقد اطلاق به دې ته ګډ وى.

تشريح:ددې اصل په لحاظ زموږ په نيز مضارب لپاره نقد يا پور چې څنګه مناسب اوګڼږي.د اخستلو خرڅولو اختيار دې.په يو روايت كې امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې.امام شافعى ،امام مالك، ابن ابى ليلى رحمهم الله او په دوهم روايت كې امام احمد رحمه الله فرمائى.چه د مالك د اجازت نه بغير پور خرڅول جائز نه دى.ځكه چې دا د رب المال د مقصود ضد دې. ﴿لأنه يوجب قصر يده على المال و التصرف فيه﴾ په دې وجه د بيع بالنسيئة اعتبار ثلث نه كيږي.

ﷲ زموږ دليل دادې.چه دا د تاجرانو د طريقې ځني ده.كوم چې ددوى عادت دې.نو اطلاق د عقد به دې ته ضرور ګډ وى.ځكه چې پور خرڅول هم تجارت مطلقه دې.په دليل د قول د الله تعالى چه ﴿إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ﴾ددې آيت نه معلومه شوه.چه تجارت كله غائب هم وى. ﴿وليس ذالك إلا البيع بالنسيئة﴾

**په مقرر ميعاد سره د خرڅولو حكم**

إِلَّا إِذَا بَاعَ إِلَى أَجَلٍ خو چې كله ئې په داسې ميعاد (نيته) باندې خرڅ كړي. لَا يَبِيعُهُ التُّجَّارُ إِلَيْهِ چې تاجران ئې په داې ميعاد باندې نه خرڅه وي. لِأَنَّ لَهُ الْأَمْرَ الْعَامَّ الْمَعْرُوفَ بَيْنَ النَّاسِ، ځكه چې ده ته د داسې امورو اختيار دې. كوم چې په سوداګرو خلګو كې عام عادت وي.

تشريح: دا د مخكنې قول ﴿و يجوز ان يبيع﴾ نه استثناء ده. او په قول د علامه عينى رحمه الله د ﴿فينتظم إطلاق العقد﴾ نه استثناء كيدل بهتر دى. مطلب دادې چه مضارب له پور خرڅول جائز دى. خو ده په پور كې داسې ميعاد قبول كړو. په كوم چې سوداګر خلق نه خرڅوى. مثلاً د لس كاله په ميعاد باندې ئې خرڅ كړو. نو دا به جائز نه وى. ځكه چې مضارب ته د داسې امورو اختيار دې. كوم چې د سوداګرو خلقو په نيز عام طور باندې مشهور وى. او په اوګد ميعاد باندې خرڅول د تاجرانو په نيز مشهور نه دى. نو د مالك اجازت به دې ته شامل نه وى.

وَهٰذَا كَانَ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ دَابَّةً لِلرُّكُوبِ، په دې وجه دې سوارلۍ لپاره حيوان (څاروې) اخستې شى. وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ سَفِينَةً لِلرُّكُوبِ، خو سوارلۍ لپاره كښتۍ نشى اخستلې. وَلَهُ أَنْ يَسْتَكْرِيَهَا دومره ضرورى ده. چه سوارلۍ لپاره كښتۍ په كرايه باندې اخستلې شى. اعْتِبَارًا لِلْعَادَةِ التُّجَّارِ، ځكه چې دا د تاجرانو د عاداتو څخه دى.

تشريح: په دې سره د ذكر شوى حكم وضاحت دې. يعنى په دې وجه چې مضارب ته صرف د هغه امورو اختيار دې. كوم چې د تاجرانو په نيز عام عادت وى. سوارلۍ لپاره حيوان (څاروې) اخستې شى. ځكه چې ددې عادت جارى دې. خو سوارلۍ لپاره كښتۍ نشى اخستلې. ځكه چې د كښتۍ اخستلو عادت نشته. بلكه صرف كرايه باندې د اخستلو عادت دې. بيا علامه مرغينانى رحمه الله كښتۍ سره د ركوب (سواريدلو) كوم قيد لګولې دې. ددې په ذريعه د بيع نه احتراز دې. چه خرڅولو لپاره كښتۍ اخستې شى. په دې شرط چې مالك په يو خاص نوع كې دتجارت تخصيص نه وى كړې. دغه ډول د مشهور روايت مطابق مضارب د مضاربت غلام ته د تجارت اجازت وركولې شى. ځكه چې دا هم د تاجرانو د عاداتو څخه دى.

وَلَهُ أَنْ يَأْذَنَ لِعَبْدِ الْمُضَارَبَةِ فِي التِّجَارَةِ او مضارب ته اختيار دې. چه دې د مضاربت غلام ته د تجارت اجازت وركړى. فِي الرِّوَايَةِ الْمَشْهُورَةِ په مشهور روايت كې، لِأَنَّهُ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ. ځكه چې دا هم د تاجرانو د عاداتو څخه دى.

تشريح: د مشهور د قيد په ذريعه د امام محمد رحمه الله نه د ابن رستم د روايت نه احتراز دې. چه مضارب د عقد په اطلاق د مضاربت غلام ته د تجارت اجازت نشى وركولې. ځكه چې دا خو دمضاربت په طور باندې د ور كاوه په مرتبه كې دى. وجه د توپير داده. چه مضارب په نفع كې شريك وى. او ذكر شوې ماذون غلام به نفع كى شريك نه وى.

وَلَوْ بَاعَ بِالنَّقْدِ او كه ده په نقدو خرڅ كړو. ثُمَّ أَخَّرَ الثَّمَنَ بيا ئې ثمن مؤخر كړو. جَازَ بِالْإِجْمَاعِ، نو بالاجماع جائز دې. أَمَّا عِنْدَهُمَا فَلِأَنَّ الْوَكِيلَ يَمْلِكُ ذٰلِكَ د طرفينو رحمهما الله په نيز خو ځكه چې وكيل ته ددې اختيار دې. فَالْمُضَارِبُ أَوْلَى، نو مضارب ته به په طريقه اولى اختيار وى. إِلَّا أَنَّ الْمُضَارِبَ لَا يَضْمَنُ صرف دومره خبره ده. چه مضارب نه ضامن كيږى. لِأَنَّ لَهُ أَنْ يُقَايِلَ ځكه چې ده ته دا اختيار دې. چې د بيع اقاله اوكړى. ثُمَّ يَبِيعَ نَسِيئَةً، او په پور ئې خرڅ كړى. وَلَا كَذٰلِكَ الْوَكِيلُ او وكيل داسې نه دې. لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ ذٰلِكَ. ځكه چې هغه ددې مالك نه وى. وَأَمَّا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ فَلِأَنَّهُ يَمْلِكُ الْإِقَالَةَ ثُمَّ الْبَيْعَ بِالنَّسَاءِ. او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز ځكه چې مضارب د اقاله كولو، او بيا په پور د خرڅولو مختار دې. بِخِلَافِ الْوَكِيلِ لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْإِقَالَةَ. په خلاف د وكيل، چه هغه د اقالې مختار نه دې.

تشريح: كه مضارب يو شې په نقد خرڅ كړو. بيا ئې مشترى ته د ثمن مهلت وركړو. نو دا په اجماع د احنافو جائز دى. د طرفينو رحمهما الله په نيز جواز ځكه دې. چه هركله وكيل ته ددې خبرې اختيار دې. چه په نقد خرڅ كړي. او مشترى ته د ثمن مهلت وركړي. نو مضارب ته به دا اختيار په طريقه اولى وى. ځكه چې د مضارب د وكيل په نسبت عام دې. ځكه چې مضارب په نفع كې شريك وى. يا د شريكيدلو په غرضيت كې وى. نو په يوه وجه اصيل شو. البته دومره توپير دې. چه مضارب د ثمن د تاخير نه روسته رب المال لپاره ضامن نه وى. ځكه ده ته دا اختيار دې. چه د بيع اقاله اوكړى. او د مشترى په لاس ئې پور خرڅ كړى. ځكه چې هركله دې په ابتداء كې پور خرڅولې شى. نو د اقالې په ذريعه به هم اختيار وى. په خلاف د وكيل، چه هغه داسې نشى كولې. او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز جواز ځكه دې. چه مضارب اقاله كولې شى. بيا ئې د مشترى په لاس پور خرڅولې شى. نو ثمن كې به مهلت وركاوه هم جائز وى. په خلاف د وكيل، چه هغه اقاله نشى كولې. نو د تاجيل ثمن (يعنى د تاخير او نيتې وركولو) اختيار به هم نه وى.



وَلَوْ احْتَالَ بِالثَّمَنِ عَلَى الْأَيْسَرِ أَوِ الْأَعْسَرِ كه مضارب په يو توانګر يا غريب باندې د ثمن حواله قبول كړله. جَازَ نو جائز ده. لِأَنَّ الْحَوَالَةَ مِنْ عَادَةِ التُّجَّارِ، ځكه چې حواله هم د تاجرانو د عاداتو څخه ده. بِخِلَافِ الْوَصِيِّ يَحْتَالُ بِمَالِ الْيَتِيمِ په خلاف د وصيت كوونكي كوم چې د يتيم د مال حواله قبوله كړى. حَيْثُ يُعْتَبَرُ فِيهِ الْأَنْظَرُ، چې په دې كې به د بهتر اعتبار كولې شى. لِأَنَّ تَصَرُّفَهُ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ النَّظَرِ، ځكه چې د وصيت تصرف په شفقت او بهتروالى سره مقيد دې. وَالْأَصْلُ أَنَّ مَا يَفْعَلُهُ الْمُضَارِبُ او اصل دادې. چه مضارب كوم كار كوى. ثَلَاثَةُ أَنْوَاعٍ: هغه په درې قسمه وى. نَوْعٌ يَمْلِكُهُ بِمُطْلَقِ الْمُضَارَبَةِ يو ډول هغه دې. د كوم چې دې په مطلق مضاربت سره مالك كيږى. وَهُوَ مَا يَكُونُ مِنْ بَابِ الْمُضَارَبَةِ وَتَوَابِعِهَا او دا هغه دې. كوم چې د باب مضاربت او ددې د توابع څخه وى. وَهُوَ مَا ذَكَرْنَا، او دا هم هغه دې. او دا هم هغه دې. كوم چې موږ ذكر كړې دې. وَمِنْ جُمْلَتِهِ التَّوْكِيلُ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ او من جمله ددې نه د اخستلو او خرڅولو لپاره وكيل كول دى. او ددې د ارتيا په وجه. وَالرَّهْنُ وَالِارْتِهَانُ او رهن اخستل، رهن كيخودل دى. لِأَنَّهُ إِيفَاءٌ وَاسْتِيفَاءٌ ځكه چې دا ادا كول او وصولول دى. وَالْإِجَارَةُ وَالِاسْتِئْجَارُ وَالْإِيدَاعُ وَالْإِبْضَاعُ وَالْمُسَافَرَةُ اجاره باندې وركول، اجاره باندې اخستل، امانت ايخودل، بضاعت وركول، او سفر كول دى. عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ بناء په هغه تفصيل كوم چې وړاندې ذكر شوې دې.

تشريح: كه مضارب په يو توانګر يا غريب باندې د ثمن حواله قبول كړله. نو دا هم جائز دى. ځكه چې دا هم د تاجرانو (او سوداګرو) په نيز عام عادت دې. په خلاف د وصى، كه ده د يتيم د مال حواله قبول كړله. نو كتلې به شى. چه د يتيم په حق كې غوره ده اوكه نه ده؟ مثلاً په كوم كس چې حواله كړې شوې ده. كه هغه د مديون نه زيات توانګر وى. نو جائز به وى. ګنى جائز به نه وى. وجه ښكاره ده. چه د وصى تصرف د يتيم بهتروالى سره مقيد دې.

### په مطلق عقد سره د مضارب د مالك كيدلو حكم

وَنَوْعٌ لَا يَمْلِكُهُ بِمُطْلَقِ الْعَقْدِ او يو ډول هغه دې. د كوم چې مطلق عقد سره نه مالك كيږى. وَيَمْلِكُهُ إِذَا قِيلَ لَهُ او هغه وخت مالك كيږى. كله چې ده ته وئيلى شوى وى. اعْمَلْ بِرَأْيِكَ، چې خپلې رائې سره كار كوه. وَهُوَ مَا يَحْتَمِلُ أَنْ يُلْحَقَ بِهِ او دا هغه افعال دى. كوم چې ډول اول سره لاحق (متعلق) كيداې شى. فَيُلْحَقُ عِنْدَ وُجُودِ الدَّلَالَةِ، نو لاحق (يوځاې) كولې به شى. د دلالت كيدلو په وخت. وَذٰلِكَ مِثْلُ دَفْعِ الْمَالِ مُضَارَبَةً لكه يو كس ته په مضاربت يا شركت باندې مال وركول. أَوْ شَرِكَةً إِلَى غَيْرِهِ وَخَلْطِ مَالِ الْمُضَارَبَةِ بِمَالِهِ أَوْ بِمَالِ غَيْرِهِ او مال د مضاربت خپل يا د غير مال سره ملاوول. لِأَنَّ رَبَّ الْمَالِ رَضِيَ بِشَرِكَتِهِ ځكه چې مالك دده په شركت سره راضى شوې دې. لَا بِشَرِكَةِ غَيْرِهِ، د غير په شركت سره نه دې راضى شوې. وَهُوَ أَمْرٌ عَارِضٌ او دا چونكه يو عارضى امر دې. لَا يَتَوَقَّفُ عَلَيْهِ التِّجَارَةُ چې په دې باندې تجارت موقوف نه دې. فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ مُطْلَقِ الْعَقْدِ په دې وجه به مطلق عقد كې نه داخليږى. وَلٰكِنَّهُ جِهَةٌ فِي التَّثْمِيرِ، فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ يُوَافِقُهُ فَيَدْخُلُ فِيهِ عِنْدَ وُجُودِ الدَّلَالَةِ وَقَوْلُهُ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ دَلَالَةٌ عَلَى ذٰلِكَ. او دا وئيل چې خپلې رائې سره كار كول، داخليدلو لپاره دلالت كافى دې. وَنَوْعٌ لَا يَمْلِكُهُ بِمُطْلَقِ الْعَقْدِ او يو نوع هغه

ده.دکوم چې نه مالك کيږي.نه په مطلق عقد سره، وَلَا بِقَوْلِهِ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ اونه په دې ونيلو سره.چه پخپلې رائې سره کار کوه. إِلَّا أَنْ يَنُصَّ عَلَيْهِ رَبُّ الْمَالِ خو کله چې رب المال ددې صراحت اوکړي. وَهُوَ الِاسْتِدَانَةُ او هغه پور اخستل دی. وَهُوَ أَنْ يَشْتَرِيَ بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ بَعْدَ مَا اشْتَرَى بِرَأْسِ الْمَالِ السِّلْعَةَ وَمَا أَشْبَهَ ذَٰلِكَ چې ددې صورت دادې.چه د راس المال په عوض د سامان اخستلو نه روسته دراهم او دنانير يا ددې پشان د کيلي او وزني شئ په عوض واخلی. لِأَنَّهُ يَصِيرُ الْمَالُ زَائِدًا عَلَى مَا انْعَقَدَ عَلَيْهِ الْمُضَارَبَةُ ځکه چې راس المال زياتيږي.په هغې سره په کوم چې مضاربت منعقد شوې وو. وَلَا يَرْضَى بِهِ نو مالك به په دې نه راضی کيږي. وَلَا يَشْغَلُ ذِمَّتَهُ بِالدَّيْنِ، اونه به ئې پخپله ذمه پور کې مشغوله وی. وَلَوْ أَذِنَ لَهُ رَبُّ الْمَالِ بِالِاسْتِدَانَةِ او که مضارب ته رب المال د پور اخستلو اجازت ورکړو. صَارَ الْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ بِمَنْزِلَةِ شَرِكَةِ الْوُجُوهِ نو په پور اخستې شوې شئ به په دوی دواړو کې نيم په نيمه وی.په مرتبه د شرکت د وجو، وَأَخْذُ السَّفَاتِجِ او هنډی اخستل دی. لِأَنَّهُ نَوْعٌ مِنَ الِاسْتِدَانَةِ، ځکه چې دا يو ډول پور اخستل دی. وَكَذَا إِعْطَاؤُهَا دغه ډول هنډی ورکول دی. لِأَنَّهُ إِقْرَاضٌ ځکه چې دا پور ورکول وی. وَالْعِتْقُ بِمَالٍ وَبِغَيْرِ مَالٍ وَالْكِتَابَةُ او غلام مضارب په مال يا د مال نه بغير آزادول دی.اومکاتب کول دی. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ ځکه چې دا د افعالو د تجارت ځنې نه دی. وَالْإِقْرَاضُ وَالْهِبَةُ وَالصَّدَقَةُ او پور ورکول، هبه ورکول، صدقه ورکول دی. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ ځکه چې دا واړه خالص احسانونه دی.

**حل اللغة:**①خلط: ملاوول،② تثمير: ډيرول، زياتول،③ينص: (ن) نصاً، ښکاره کول.④استدانه: پور اخستل ⑤سلعة: سامان تجارت، ⑥سفاتج: د سفتجه جمع ده.هنډی ، ⑦اقراض: پور ورکول.

**تشريح:** د ترجمې نه مطلب واضح دې

## د مال مضاربت د غلام يا وينځې د نکاح حکم

قَالَ (وَلَا يُزَوِّجُ عَبْدًا وَلَا أَمَةً مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ)(١) او نکاح به نه کوی.د مال مضاربت دغلام يا وينځې، وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ يُزَوِّجُ الْأَمَةَ چې وينځه په نکاح ورکولې شی. لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الِاكْتِسَابِ، ځکه چې دا د ګټې د باب ځنې دی. أَلَا تَرَى آيا نه ګورې، أَنَّهُ يَسْتَفِيدُ بِهِ الْمَهْرَ چې په دې سره به هغه مهر حاصله وی. وَسُقُوطَ النَّفَقَةِ. اود مهر سقوط (به اوشی). وَلَهُمَا د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ چې دا تجارت نه دې. وَالْعَقْدُ لَا يَتَضَمَّنُ إِلَّا التَّوْكِيلَ بِالتِّجَارَةِ او عقد مضاربت نه متضمن کيږي.د تجارت توکيل نه علاوه ته. وَصَارَ كَالْكِتَابَةِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ نودا د مکاتب کولو ،او مال باندې د آزادولو پشان شو. فَإِنَّهُ اكْتِسَابٌ، چې دا هم اکتساب (عمل) دې. وَلَكِنْ لَمَّا لَمْ يَكُنْ تِجَارَةً خوتجارت نه دې. لَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْمُضَارَبَةِ په دې وجه مضاربت کې داخل نشو. فَكَذَا هَذَا. دغه ډول به نکاح کول هم نه داخليږی.

**تشريح:** مضارب ته ددې اختيار نشته.چه د مال مضاربت يو غلام ته د نکاح اجازت ورکړی.يا وينځه د چا په نکاح کې ورکړی.او په نوادر کې د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه وينځه د مهر په عوض نکاح کې ورکولې شی.ځکه چې دا هم يو قسم ګټه ده.چه په دې فعل سره مضارب ته مهر حاصليږی.او دده د ذمې نه خرچه ساقطيږی.د طرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه دا واړه منو.خودا تجارت نه دې.او عقد مضاربت د تجارت د توکيل نه علاوه په بله طريقه ګټې کولو ته شامل نه دې.نود وينځې نکاح کول داسې شو.لکه د مضاربت غلام مکاتب کول،يا دا د مال په عوض آزادول، چې په دې سره هم مال حاصليږی.خو چونکه دا تجارت نه دې.په دې وجه مضاربت کې داخل نه دې.نو دغه شان به د وينځې په نکاح ورکول به هم نه داخليږی.

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى العناية (٤٤١\١٧) والدرالمختار(٥٤٢\١٤) ومجمع الأنهر(٤٥١\١٣) والبحرالرائق (٢٤٥\١٧) والدارلمنتقى (٤٥١\١٣)نقلاً عن القول الراجح (٢١١\١٢)



## د مضارب د اخراجاتو مسئله

قَالَ (فَإِنْ دَفَعَ شَيْئًا مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ إِلَى رَبِّ الْمَالِ بِضَاعَةً که مضارب څه مال مضاربت بضاعت باندې ورکړو، فَاشْتَرَى رَبُّ الْمَالِ وَبَاعَ نو مضارب اخستل خرڅول اوکړل فَهُوَ عَلَى الْمُضَارَبَةِ)(١) نودا به مضاربت باندې وی. وَقَالَ زُفَرُ: امام زفر رحمه الله فرمائی. تَفْسُدُ الْمُضَارَبَةُ چې مضاربت به فاسد وی. لِأَنَّ رَبَّ الْمَالِ مُتَصَرِّفٌ فِي مَالِ نَفْسِهِ ځکه چې رب المال پخپل ذاتی مال کې متصرف دې. فَلَا يَصْلُحُ وَكِيلًا فِيهِ نو هغه په دې کې وکيل نشی کيدلې. فَيَصِيرُ مُسْتَرِدًّا نودا واپس اخستونکې شو. وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ إِذَا شُرِطَ الْعَمَلُ عَلَيْهِ ابْتِدَاءً. په دې وجه مضاربت نه صحيح کيږي.که په ابتداء کې د رب المال په ذمه کار کول شرط وی. وَلَنَا أَنَّ التَّخْلِيَةَ فِيهِ قَدْ تَمَّتْ زموږ دليل دادې.چه دې کې تخليه مکمل شوه. وَصَارَ التَّصَرُّفُ حَقًّا لِلْمُضَارِبِ او تصرف کول د مضارب حق شو. فَيَصْلُحُ رَبُّ الْمَالِ وَكِيلًا عَنْهُ فِي التَّصَرُّفِ نو تصرف کې رب المال دده اړخه وکيل کيداې شی. وَالْإِبْضَاعُ تَوْكِيلٌ مِنْهُ او بضاعت ورکول دده د اړخه توکيل دې. فَلَا يَكُونُ اسْتِرْدَادًا نودا به واپس اخستل نه وی. بِخِلَافِ شَرْطِ الْعَمَلِ عَلَيْهِ فِي الِابْتِدَاءِ په خلاف په ابتداء کې رب المال باندې د کار شرط کولو. لِأَنَّهُ يَمْنَعُ التَّخْلِيَةَ، ځکه چې دا د تخليه نه مانع دې.

**تشريح:** که مضارب کل مال مضاربت يا د مضاربت بعض مال رب ا لمال ته د بضاعت په طور ورکړی.اوهغه اخستل خرڅول اوکړی.نو زموږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز دې سره عقد مضاربت نه فاسديږی.د امام زفر رحمه الله په نيز فاسديږی.ځکه چې رب المال پخپل مال کې پخپله متصرف شو.نو هغه په دې کې وکيل کيداې نشی.نو ګويا دده دمضارب نه خپل مال واپس واخستلو.هم دا وجه ده.که په ابتداء د مضاربت کې د رب المال په ذمه کار کول شرط وی.نو مضاربت نه صحيح کيږی.زموږ دليل دادې.چه د مضارب او مال په منځ کې رب المال پوره طور باندې، تخليه کړې وه.او مضارب ته په دې کې د تصرف کاوه پوره حق حاصل شوې وو.نو رب المال په تصرف کې دده د اړخه وکيل کيداې شی.اود بضاعت په طريقه مال ورکول، دده د اړخه توکيل دې.نو بضاعت ورکول به استرداد نه وی.په دې موقع باندې يو څو سوالونه او د هغې ځوابونه ذکر کول ډير ضروری دی.

❶سوال: رب المال د مضارب د اړخه وکيل نشی جوړيدلې.ځکه وکيل خو هغه کس وی.کوم چې د غير په مال کې د هغه په حکم سره عامل وی.او دلته رب المال پخپله خپل مال کې عامل دې؟

ځواب: رب المال د تخليه نه روسته د مال په حق کې بالکل اجنبی شو.نو توکيل جائز دې.

❷سوال: د ابضاع معنی داده.چه مال د مبضع وی.او عمل د بل کس وی.او دلته مال د مبضع نه دې.نو بضاعت به څنګه صحيح وی ؟

ځواب: د ابضاع دا تفسير نه دې.بلکه د ابضاع معنی د، په تصرف کې دغير کومك اخستل.او رب المال معين کيداې شی.بلکه تصرف کې چې کوم شفقت دده کيداې شی.هغه د نورو خلګو نشی کيدې.نود مضارب د اجنبی کس نه کومك اخستل صحيح دی.نو رب المال څخه به دده امداد اخستل په طريقه اول صحيح وی.

❸سوال: اجنبی د مضارب ځکه معين (او مددګار) کيداې شی.چه هغه د غير په مال کې د هغه په حکم سره عامل دې.او رب المال پخپله خپل مال کې عامل دې.لکه يوکس يو درزی د کپړې ګنډلو لپاره اجرت باندې اونيسی.او درزی پخپله مستاجر نه د کپړې په ګنډلو کې کومك واخلی.او مستاجر د ګنډلو کار

(١) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا فى الكفاية (٤٤٢\١٧) ورد المحتار(٥٤٠\١٤) وبدائع الصنائع (١٣٣\١٦) والبحرالرائق (٢٦٧\١٧) وخلاصة الفتاوى (١٨٩\١٤)نقلاً عن القول الراجح (٢١١\١٢)

اوکړي. نود ګټندل اجير اړخ ته نه ګرځي. تردې چې هغه لپاره د اجرت حکم نه کيږي. نو دلته کي هم مضارب ته د نفع نه هيڅ برخه ورکول پکار نه دي؟

ځواب: په مضاربت کي د اجارې او شرکت دواړو معنى ده. اود شرکت معنى راجح ده. تردې چې مضاربت د توقيت نه بغير جائز کيږي. او شرکت کي د يو بل په عمل سره د نفع حقدار جوړيږي. اګرچه ده پخپله کار نه وي کړي.

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ الْمَالَ إِلَى رَبِّ الْمَالِ مُضَارَبَةً او په خلاف ددې کله نې چې مال رب المال ته مضاربت ورکړو. حَيْثُ لَا يَصِحُّ چې دا صحيح نه ده. لِأَنَّ الْمُضَارَبَةَ تَنْعَقِدُ شَرِكَةً عَلَى مَالِ رَبِّ الْمَالِ ځکه چې مضاربت باندې منعقد کيږي په شرکت سره، د رب المال په مال باندې، وَعَمَلِ الْمُضَارِبِ اود مضارب په عمل باندې، وَلَا مَالَ هَاهُنَا، حالانکه دلته کي د مضارب د اړخه مال نشته. فَلَوْ جَوَّزْنَاهُ نو که موږ دې ته جائز اووايو. يُؤَدِّي إِلَى قَلْبِ الْمَوْضُوعِ، نو قلب موضوع (د معاملې عکس کيدل) اړخ ته به اورسوی. وَإِذَا لَمْ تَصِحَّ او هرکله چې مضاربت صحيح نشو. بَقِيَ عَمَلُ رَبِّ الْمَالِ بِأَمْرِ الْمُضَارِبِ نود رب المال عمل د مضارب په حکم سره شو. فَلَا تَبْطُلُ بِهِ الْمُضَارَبَةُ الْأُولَى نو په دې سره به ړومبې مضاربت نه باطليږي.

تشريح: که مضارب څه مال رب المال ته مضاربت باندې ورکړو. نودا ځکه صحيح نه ده. چه دلته مضارب هغه کس دې. کوم چې رب المال دې. اود مضارب د اړخه هيڅ مال نشته. نود مضاربت په جائز ساتلو کي به قلب موضوع وي. او هرکله چې مضاربت صحيح نشو. نود مالك کار د مضاربت په طور نشو بلکه د مضاربت په حکم سره شو. نو په دې سره به مضاربت نه باطليږي.

## په مال مضاربت کښې د پاته خرچې حکم

قَالَ (وَإِذَا عَمِلَ الْمُضَارِبُ فِي الْمِصْرِ) که مضارب پخپل ښار کي کار کوی. فَلَيْسَتْ نَفَقَتُهُ فِي الْمَالِ، نو د ده نفقه به په مال مضاربت کي (حساب) نه وي. وَإِنْ سَافَرَ او که ده سفر اوکړو. فَطَعَامُهُ وَشَرَابُهُ وَكِسْوَتُهُ وَرُكُوبُهُ. نو دده خوراك، څکاك، کپړه، سوارلی، وَمَعْنَاهُ شِرَاءً وَكِرَاءً فِي الْمَالِ يعنى اخستل او کرايه باندې ورکول، واړه به د مال مضاربت څخه وي. وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ النَّفَقَةَ تَجِبُ بِإِزَاءِ الِاحْتِبَاسِ وجه د توپير داده. چه نفقه د منع کاوه (او بندولو) په مقابله کي وي. كَنَفَقَةِ الْقَاضِي وَنَفَقَةِ الْمَرْأَةِ، لکه د قاضى نفقه، او د ښځې نفقه، وَالْمُضَارِبُ فِي الْمِصْرِ سَاكِنٌ بِالسُّكْنَى الْأَصْلِيِّ، او مضارب ښار کي اصلى سکونت سره اوسيږي. وَإِذَا سَافَرَ او هرکله چې ده سفر اوکړو. صَارَ مَحْبُوسًا بِالْمُضَارَبَةِ نو هغه مضاربت کي بوخت شو. فَيَسْتَحِقُّ النَّفَقَةَ فِيهِ، نو مال مضاربت سره د نفقې مستحق شو.

تشريح: که مضارب پخپل ښار کي کار کوی. (که دا ښار دده د زيږيدل ځائې وي. او که د اوسيدو ځائې وي). نو دده خپله ذاتى خرچه به دې د خپل مال نه پوره کوی. د مضاربت د مال څخه به ئې نه پوره کوی. که دې د مالك په اجازت سره تجارت لپاره سفر اوکړی. نو دده خوراك، څکاك، کپړې او بستره، سوارلی، دډيوې تيل، خشاك، خادم (نوکر)، حمام، د نائى مزدوری، غرض داچه واړه ضرورتونه به د مال مضاربت نه پوره کولې شي. خود دستور مطابق به فضول خرچى جائز نه وي. وجه د فرق داده. چه د سړي نفقه د کار مشغولې په مقابله کي وی. لکه قاضى چې د عامو خلقو په کار کي مشغوله وی. په دې وجه د هغه نفقه د بيت المال نه ورکولې شي. دغه شان ښځه د خپل ميړه په کور کي دده پابنده اوسيږي. نو ددې خرچه په ميړه باندې وي. او مضارب چې ترکومه پخپل ښار کي وي. نو هغه خپل اصلى سکونت سره اوسيږي. نو کله چې دې سفر اوکړی. او مضاربت کي بوخت شي. بيا به د مال مضاربت نه د نفقې مستحق وي.

وَهَذَا بِخِلَافِ الْأَجِيرِ اودا د اجير په خلاف دې. لِأَنَّهُ يَسْتَحِقُّ الْبَدَلَ لَا مَحَالَةَ ځکه چې دې خو خامخا د مزدورۍ مستحق



کيږي. فَلَا يَتَضَرَّرُ بِالْإِنْفَاقِ مِنْ مَالِهِ، نو دې به پخپل مال سره خرچه کاوه کي نقصان نه اوچتوی. أَمَّا الْمُضَارِبُ فَلَيْسَ لَهُ إِلَّا الرِّبْحُ باقي شو مضارب نو دده لپاره د نفع نه سوا هيڅ نشته. وَهُوَ فِي حَيِّزِ التَّرَدُّدِ، او هغه هم په تردد (او شك) کي دې. فَلَوْ أَنْفَقَ مِنْ مَالِهِ نو که هغه خپل مال سره خرچه اوکړی. يَتَضَرَّرُ بِهِ، نو ضرر به اوچتوی. وَبِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ الْفَاسِدَةِ او په خلاف د مضاربت فاسده، لِأَنَّهُ أَجِيرٌ ځکه چې دې کي مضارب اجير وی. وَبِخِلَافِ الْبِضَاعَةِ او دغه ډول په خلاف د بضاعت. لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ ځکه چې هغې کي دې احسان کونکې وی.

تشريح: په خلاف د اجير چې هغه د نفقې مستحق نه وی. اګرچه سفر اوکړی. ځکه چې هغه خو خامخا د مزدورۍ مستحق وی. نو هغه ته پخپل مال کي خرچ کاوه سره هيڅ ضرر نه رسيږي. او مضارب لپاره صرف نفع وی. او هغه هم په تردد (اوشك) کي وی. چه کيداې شي چه حاصله شي. يا حاصله نشي. نو که مضارب د خپل مال نه خرچ کړی. نو هغه به ضرر اوچتوی. بيا ذکر شوې حکم په مضاربت صحيحه کي دې. په مضاربت فاسده کي مضارب صرف اجير وی. نو هغه ته به ددې کار اجر مثل ملاويږي. که نفع وی. اوکه نه وی.

## د نفع په صورت کښې د راس المال د خرچ شوی رقم پوره کولو مسئله

قَالَ (فَإِنْ بَقِيَ شَيْءٌ فِي يَدِهِ بَعْدَ مَا قَدِمَ مِصْرَهُ) که خپل ښار ته د راتلو نه روسته نفقه کي څه يېځ باقي شي رَدَّهُ فِي الْمُضَارَبَةِ) لِانْتِهَاءِ الِاسْتِحْقَاقِ، نو هغه به مضاربت کي واپس کوی. د استحقاق ختميدلو په وجه. وَلَوْ كَانَ خُرُوجُهُ دُونَ السَّفَرِ او که دده وتل د سفر د مسافه نه کم يعنى د ۷۲ کلوميټر نه کم وی. فَإِنْ كَانَ بِحَيْثُ يَغْدُو ثُمَّ يَرُوحُ فَيَبِيتُ بِأَهْلِهِ نوکه دې سحر ځي او ماښام واپس خپل کور کي شپه تيره وی. فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ السُّوقِيِّ فِي الْمِصْرِ نو په ښار کي د بازارى پشان دې. وَإِنْ كَانَ بِحَيْثُ لَا يَبِيتُ بِأَهْلِهِ او که خپل کور کي شپه نشي تيرولې. فَنَفَقَتُهُ فِي مَالِ الْمُضَارَبَةِ نو دده نفقه به د مال مضاربت نه وی. لِأَنَّ خُرُوجَهُ لِلْمُضَارَبَةِ، ځکه چې دده بهر ته تلل د مضاربت لپاره دی. وَالنَّفَقَةُ هِيَ مَا يُصْرَفُ إِلَى الْحَاجَةِ الرَّاتِبَةِ او نفقه هغه ده. کومه چې په روزانه ضرورتونو کي خرچ کولې شي. وَهُوَ مَا ذَكَرْنَا، اودا هم هغه ضرورتونه دی. کوم چې موږ ذکر کړی دی. وَمِنْ ذَلِكَ غَسْلُ ثِيَابِهِ او من جمله د هغې نه پريمځل (وينځل) د جامو دده دی. وَأُجْرَةُ أَجِيرٍ يَخْدُمُهُ اود خدمتګار مزدوری، وَعَلَفُ دَابَّةٍ يَرْكَبُهَا وَالدُّهْنُ فِي مَوْضِعٍ يُحْتَاجُ إِلَيْهِ عَادَةً د سوارلۍ د خاروی ونډه او تيل دی. داسې ځائې کي چرته چې په عامه توګه (عام طور) باندې ددې اړتيا وی. كَالْحِجَازِ، لکه ملك د حجاز، وَإِنَّمَا يُطْلَقُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ بِالْمَعْرُوفِ بيا په دې ټولو کي اجازت په معروف طريقه دې. حَتَّى يَضْمَنَ الْفَضْلَ إِنْ جَاوَزَهُ اعْتِبَارًا لِلْمُتَعَارَفِ بَيْنَ التُّجَّارِ تردې چې د زياتې اندازې به ضامن وی. که د معروف نه ئې زياتې اوکړو. په هغه اعتبار سره کوم چې د تاجرانو په نيز مشهور دې

تشريح: يعنى دلته کي د سفر نه مراد سفر شرعى نه دې. بلکه مضارب چې هرکله د ښار نه دومره لرې لاړ شي. چه په شپې له خپل کور ته واپس رانشي. نو ددې حکم د سفر پشان دې. او که شپې له راتلې شي. نو ددې حکم د ښار د بازارونو پشان دې. (خو په دې مهال کي به لمونځ قصر نه کوی. ځکه چې دې مسافر نه دې. بلکه د مسافر بعض احکام په ده باندې لازم دی).

قَالَ (وَأَمَّا الدَّوَاءُ) باقي شوه دوائى، (فَفِي مَالِهِ) فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ هغه به د مضارب د مال نه پوره کولې شي په ظاهر الرواية کي، وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ يَدْخُلُ فِي النَّفَقَةِ چې دوائى هم نفقه کي داخل ده. لِأَنَّهُ لِإِصْلَاحِ بَدَنِهِ ځکه چې دا د بدن اصلاح لپاره ده. وَلَا يَتَمَكَّنُ مِنَ التِّجَارَةِ چې ددې نه بغير دې تجارت نشی کولې. إِلَّا بِهِ فَصَارَ كَالنَّفَقَةِ، وَجْهُ الظَّاهِرِ د ظاهر الرواية وجه داده. أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى النَّفَقَةِ مَعْلُومَةُ الْوُقُوعِ چې د نفقې اړتيا واقع کيدل معلوم دی. وَإِلَى الدَّوَاءِ بِعَارِضِ الْمَرَضِ، اود دوايۍ اړتيا د بيمارۍ راپيښيدلو په وجه راځي. وَلِهَذَا كَانَتْ نَفَقَةُ الْمَرْأَةِ عَلَى الزَّوْجِ په دې وجه د ښځې نفقه په ميړه باندې وی. وَدَوَاؤُهَا فِي مَالِهَا او دوائى د ښځې د مال نه پوره کولې شي.

**تشریح:** د دوایئ خرچه د ظاهرالروایة مطابق د مضارب د مال نه ادا کیږي.اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه د حسن بن زیاد رحمه الله روایت دادې.چه د دوایئ قیمت به هم نفقه کي ګڼلی کیږي. ځکه چې دوائی او علاج معالجه کول د بدن د صحت لپاره دی.اود بدن د اصلاح نه بغیر دې تجارت نشی کولې.نو دوائي هم د نفقې پشان شوه.د ظاهرالروایة وجه داده.چه د نفقې د اړتیا واقع کیدل خو معلوم دی.چه د خوراك، څکاك، او لباس وغیره نه بغیر نه هیڅ خلاصې نشته.په خلاف د دوایئ، چې ددې اړتیا د بیمارئ پیښیدلو په وجه کیږي.چه ددې واقع کیدل هیڅ ضروري نه دی. ،،فلم یکن ملزما،،

## د نصف نفعې په مضاربت کېږي د نقصان بیان

قَالَ (وَإِذَا رَبِحَ) هرکله چې مضارب نفع حاصل کړله. أَخَذَ رَبُّ الْمَالِ مَا أَنْفَقَ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ، نو رب المال به هغه مال اخلی.کوم چې ده ( مضارب) خرچ کړې دې.د رب المال نه

**تشریح:** هرکله چې مضارب ته د مضاربت په مال کې نفع اوشی.نو ده چې د راس المال نه کوم څه پخپله نفقه کې خرچ کړی دی.مالك به هغه حسابوی.چه اصل رقم پوره شی.بیا چې کوم پاته پاتې شی.هغه به تقسیمیږی.

فَإِنْ بَاعَ الْمَتَاعَ مُرَابَحَةً بیا که دې سامان په مرابحه باندې خرڅ کړی. حَسَبَ مَا أَنْفَقَ عَلَى الْمَتَاعِ مِنَ الْحُمْلَانِ وَنَحْوِهِ، نو هغه به شاملوی.کوم چې ده په سامان باندې لګولې دې.د بار اوړلو( کرایه) وغیره، وَلَا يَحْتَسِبُ مَا أَنْفَقَ عَلَى نَفْسِهِ) او هغه مال به نه شاملوی.کوم چې ده پخپل ذات باندې خرچ کړې دې. لِأَنَّ الْعُرْفَ جَارٍ بِإِلْحَاقِ الْأَوَّلِ دُونَ الثَّانِي، ځکه عام عرف هم د اول په ملاویدلو باندې جاری دې.د دوهم په ملاویدلو ( جاری) نه دې. وَلِأَنَّ الْأَوَّلَ يُوجِبُ زِيَادَةً فِي الْمَالِيَّةِ بِزِيَادَةِ الْقِيمَةِ او ځکه چې اول په مالیت کې زیاتوالې واجبوی.د قیمت په زیاتوالی سره. وَالثَّانِي لَا يُوجِبُهَا. او دوهم دا نه واجبوی.

**تشریح:** که مضارب د مال مضاربت نه څه شئ مرابحة خرڅ کړی.نو کوم څه چې په دې باندې خرچ شوی دی.لکه د بار اوړلو، د دلال، دهوبی ، رنګریز، وغیره مزدورئ خرچه، نودا به اصل مال سره ملاوهی.او وائی به چې دا شئ ماته په دومره پریوتې دې.اوکوم څه چې ده پخل ذات باندې خرچ کړی دی.هغه به نه شاملوی.ځکه چې عام عرف هم دادې.چه کوم څه په دې مال باندې خرچ شوی دی.هغه ملاوولې شی.او کوم څه چې پخپل ذات باندې خرچ کولې شی.هغه نشی ملاوولې.او په دې وجه هم چې د مال خرچه ملاوولو سره قیمت زیاتیږی.او مالیت ډیریږی.او پخلې ذاتی خرچې ملاوولو سره دا خبره نه پیدا کیږی.

قَالَ (فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ که مضارب سره زر درهم وی. فَاشْتَرَى بِهَا ثِيَابًا چې ددې په عوض کپړې واخلی. فَقَصَّرَهَا أَوْ حَمَلَهَا بِمِائَةٍ مِنْ عِنْدِهِ د خپل اړخه سل درهم باندې اوکړی.یا بار راوړی. وَقَدْ قِيلَ لَهُ حالانکه ده ته وئیلی شوی وو. اعْمَلْ بِرَأْيِكَ چې خپلې رائې سره کار کوه. فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ) نو دې احسان کونکې دې. لِأَنَّهُ اسْتَدَانَهُ عَلَى رَبِّ الْمَالِ ځکه چې دا رب المال باندې قرضه ده. فَلَا يَنْتَظِمُهُ هَذَا الْمَقَالُ عَلَى مَا مَرَّ نو مذکوره قول به ده ته نه شاملیږی. (وَإِنْ صَبَغَهَا أَحْمَرَ وکه کپړو ته ئې سور رنګ ورکړو. فَهُوَ شَرِيكٌ بِمَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ نو رنګ چې کومه اضافه کړې ده.هغې کې به مضارب شریك وی. وَلَا يَضْمَنُ) او ضامن به نه وی. لِأَنَّهُ عَيْنُ مَالٍ قَائِمٍ بِهِ ځکه چې دا خو یو مال عین دې.کوم چې کپړې سره قائم دې. حَتَّى إِذَا بِيعَ تردې که دا خرڅه کړې شی. كَانَ لَهُ حِصَّةُ الصَّبْغِ نو مضارب لپاره به د رنګ د برخې (حصې) ثمن وی. وَحِصَّةُ الثَّوْبِ الْأَبْيَضِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ او د سپینې کپړې د برخې (حصې) ثمن به مضاربت باندې وی. بِخِلَافِ الْقِصَارَةِ وَالْحَمْلِ په خلاف د دهوبی او بار اوړلو( د کرایه او خرچې). لِأَنَّهُ لَيْسَ بِعَيْنِ مَالٍ قَائِمٍ بِهِ، ځکه چې دا عین مال نه دې.چه کپړې سره قائم وی. وَهَذَا إِذَا فَعَلَهُ الْغَاصِبُ هم دا وجه ده.که غاصب دا کار کړې وی. ضَاعَ نو دده عمل به ضائع وی. وَلَا يَضِيعُ إِذَا صَبَغَ الْمَغْصُوبَ، کله چې ده



مغصوب له سور رنګ ورکړې وی.نو عمل به ضائع نه وی. وَإِذَا صَارَ شَرِيكًا بِالصَّبْغِ او هرکله چې مضارب رنګ سره شریك شو. انْتَظَمَهُ قَوْلُهُ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ انْتِظَامَهُ الْخُلْطَةَ نو «اعمل برأیك» وئیل به دده د ملاویدلو انتظام ته ګډ وی. فَلَا يَضْمَنُهُ نو هغه به ضامن نه وی.

**تشریح:** رب المال مضارب ته اووئیل.چه ته د خپلې رائې مطابق کار کوه.مضارب د مضاربت په مال څه سامان واخستلو.او د هغې خرچه ئې د خپل اړخه ورکړله.مثلاً د کپړې وینځلو خرچه،نود مضارب دا سلوك به د خپل اړخه وی.اودا خرچه به د رب المال په ذمه نه وی.ځکه چې دا په رب المال باندې پور دې.نو دده اړخه به مذکوره اجاره کې دا نه شاملیږی.بلکه صراحت کول به ضروری وی.او که مضارب په مال د مضاربت سره سپین تهان واخستلو.اود خپل اړخه ئې رقم ورکړو.او سور رنګ ئې ورکړو.نود رنګ په وجه چې کوم قیمت زیات شی.مضارب به په دې کې شریك وی.اود مالك لپاره به د سپین تهان د قیمت ذمه دار نه وی.ځکه چې رنګ خو یو مال عین دې.کوم چې کپړې سره قائم دې.تردې که دا رنګینه کپړه خرڅه کړې شی.نو مضارب ته به د رنګ د برخې (حصې) ثمن ملاویږی.اود سپینې کپړې د برخې (حصې) ثمن به مضاربت باندې وی.مثلاً د بې رنګه کپړې قیمت زر درهمه وو.د رنګ کاوه نه روسته دولس سوه شو.نو زر درهم به مضاربت باندې پاتې وی.او دوې (دوه) سوه درهم به مضارب لپاره دده د مال ( رنګ) بدل وی.په خلاف په د هوبی د صفاکولو،او د بار اوړلو د خرچې،چه دا داسې مال عین نه دې.چه کپړې سره قائم وی.

## زر درهمه راس المال کېږي په پنځه سوه باندې اخستې غلام په رب المال د خرڅولو مسئله

(فَصْلٌ آخَرُ): قَالَ (فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ بِالنِّصْفِ یو مضارب سره زر درهم دی.په نیمه نفع باندې. فَاشْتَرَى بِهَا بَزًّا نو ده په هغې باندې کتانی تهان واخستلو. فَبَاعَهُ بِأَلْفَيْنِ په دوې (دوه) زره ئې خرڅ کړو. ثُمَّ اشْتَرَى بِالْأَلْفَيْنِ عَبْدًا نو په دوې (دوه) زره ئې غلام واخستلو. فَلَمْ يَنْقُدْهُمَا حَتَّى ضَاعَا او اوس ئې لا قیمت نه وو ورکړې.چه دوې (دوه) زره ضائع شوې. يَغْرَمُ رَبُّ الْمَالِ أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ وَالْمُضَارِبُ خَمْسَمِائَةٍ نو رب المال به د پنځلس سوه او مضارب به د پنځه سوه درهمو ضامن وی. وَيَكُونُ رُبُعُ الْعَبْدِ لِلْمُضَارِبِ اوس به څلورمه برخه د غلام د مضارب وی. وَثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ) او درې برخې (حصې) به مضاربت باندې وی. قَالَ: علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. هَذَا الَّذِي ذَكَرَهُ حَاصِلُ الْجَوَابِ، چې داکوم حکم ذکر کړې شو.دا حاصل د ځواب دې. لِأَنَّ الثَّمَنَ كُلَّهُ عَلَى الْمُضَارِبِ ځکه چې ثمن خو پوره د مضارب په ذمه دې. إِذْ هُوَ الْعَاقِدُ، ځکه چې عاقد هم دې. إِلَّا أَنَّ لَهُ حَقَّ الرُّجُوعِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ بِأَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ عَلَى مَا نُبَيِّنُ خو هغه لپاره د رب المال نه د پنځلس سوه درهمو اخستلو حق حاصل دې.لکه چې موږ به بیان کړو. فَيَكُونُ عَلَيْهِ فِي الْآخِرَةِ. نو ثمن آخر کې رب المال باندې شو. وَوَجْهُهُ او وجه ددې داده. أَنَّهُ لَمَّا نَضَّ الْمَالُ چې هرکله مال نقدشوې وو. ظَهَرَ الرِّبْحُ نو نفع ښکاره شوې وه. وَلَهُ مِنْهُ وَهُوَ خَمْسُمِائَةٍ، او هغه پنځه سوه درهمه وو. فَإِذَا اشْتَرَى بِالْأَلْفَيْنِ عَبْدًا نو هرکله چې ده د دوې (دوه) زره درهمو په عوض یو غلام واخستلو. صَارَ مُشْتَرِيًا رُبُعَهُ لِنَفْسِهِ وَثَلَاثَةَ أَرْبَاعِهِ لِلْمُضَارَبَةِ عَلَى حَسَبِ انْقِسَامِ الْأَلْفَيْنِ، نو دده څلورمه برخه خپل ځان لپاره او درې برخې (حصې) د مضاربت لپاره اخستونکې شو.د دوې (دوه) زره د تقسیمولو مطابق، وَإِذَا ضَاعَتِ الْأَلْفَانِ او هرکله چې دوې (دوه) زره ضائع شو. وَجَبَ عَلَيْهِ الثَّمَنُ لِمَا بَيَّنَّاهُ، نو مضارب باندې ثمن واجب شو.په هغه وجه کومه چې موږ بیان کړله. وَلَهُ الرُّجُوعُ بِثَلَاثَةِ أَرْبَاعِ الثَّمَنِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ او ده ته د رب المال نه د دریو برخو ثمن واپس اخستلو استحقاق اوشو. لِأَنَّهُ وَكِيلٌ مِنْ جِهَتِهِ فِيهِ ځکه چې دې کې د رب المال د اړخه وکیل دې. وَيَخْرُجُ نَصِيبُ الْمُضَارِبِ وَهُوَ الرُّبُعُ مِنَ الْمُضَارَبَةِ او د مضارب برخه کومه چې څلورمه ده.د مضاربت نه خارجیږی. لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځکه چې هغه په ده باندې مضمون ده. وَمَالُ الْمُضَارَبَةِ أَمَانَةٌ او مال د مضاربت دده سره امانت دې. وَبَيْنَهُمَا مُنَافَاةٌ او په ضمانت او امانت کې منافات دی. وَيَبْقَى ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الْعَبْدِ عَلَى الْمُضَارَبَةِ او د غلام درې

برخي (حصې) مضاربت باندې پاتې شوې. لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ مَا يُنَافِي الْمُضَارَبَةَ ځكه چې هغې كې د مضاربت منافي هيڅ خبره نشته. (وَيَكُونُ رَأْسُ الْمَالِ أَلْفَيْنِ وَخَمْسَمِائَةٍ) وس راس المال دوې (دوه) زره پنځه سوه شو. مَرَّةً أَلْفًا وَمَرَّةً أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةٍ ځكه چې رب المال يو ځل زر (درهم) وركړل. او يو ځل پنځلس سوه. (وَلَا يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً إِلَّا عَلَى أَلْفَيْنِ) بيا مضارب دا مرابحة خرڅ نكړي. مګر په دوې (دوه) زره باندې. لِأَنَّهُ دَفَعَ لِأَنَّهُ اشْتَرَاهُ بِأَلْفَيْنِ، ځكه چې په دوې (دوه) زره اخستې دې. وَيَظْهَرُ ذَلِكَ فِيمَا إِذَا بِيعَ الْعَبْدُ بِأَرْبَعَةِ آلَافٍ او ددې فائده به هغه وخت ښكاره كيږي كله چې غلام په څلور زره خرڅ كړي. فَحِصَّةُ الْمُضَارَبَةِ ثَلَاثَةُ آلَافٍ يُرْفَعُ رَأْسُ الْمَالِ نو د مضاربت برخه درې زره دي چه ددې نه د مضاربت دوې (دوه) نيم زره اوښكلې شي. وَيَبْقَى خَمْسُمِائَةٍ رِبْحٌ بَيْنَهُمَا او پاته پنځه سوه به دوې دواړو كي د نفع وي.

**تشريح:** د نصف منفعت مضارب د مضاربت په زر درهمو د كپړې يو تهان واخستلو. او په دوې (دوه) زره نې خرڅ كړو. بيا هم په دې دوې (دوه) زره درهمو نې يو غلام واخستلو او لا تراوسه نې د غلام قيمت نه وو وركړې چه دوې (دوه) زره درهم هلاك شو. نو مضارب به نصف نفع يعنى د دوې (دوه) زره څلورمه (پنځه سوه درهم) تاوان وركوى. او پاته يعنى د دوې (دوه) زرو درې برخې (حصې) (يونيم زر درهم) تاوان به مالك باندې وى. ځكه چې هركله د كپړې خرڅولو نه روسته مال د يو زر نه دوې (دوه) زره شو. نو په مال كې د زر درهمو نفع ښكاره شوه. او هغه په دواړو كې نيم په نيمه شوه. نو مضارب ته د هغې نه پنځه سوه درهم اورسيدل. ددې نه روسته چې هركله نې د دوې (دوه) زره درهمو غلام واخستلو. نو هغه دواړو كي مشترك شو. يعنى څلورمه برخه غلام د مضارب شو. او درې برخې (حصې) د مالك (د رب المال) شوې. بيا د ثمن اداكولو نه وړاندې دوې (دوه) زره هلاك شو. نو تاوان به دواړو باندې د ملك په اندازه وى. نو څلورمه برخه يعنى پنځه سوه درهم په مضارب باندې راځى. او پاته يو نيم زر به مالك باندې لازم وى. او څلورمه برخه غلام كوم چې د مضارب مملوك دې. هغه به د مضاربت نه اوښكلې شى. او پاته به په مضاربت باندې وى. د مضارب برخه به مضاربت نه ځكه اوښكلې شى. چه هغه مضمون ده. او مال د مضاربت امانت دې. او په دې دواړو كې منافات دې. نو د مضارب برخه به اوښكلې شى. بيا به راس المال نه يونيم زر وى. ځكه چې يو زر خو رب المال مخكې وركړې وې. په كومو چې مضارب كپړه اخستې وه. د هغې نه روسته نې يو نيم زر د تاوان وركړې. نو واړه راس المال دوې (دوه) نيم زره شو. خو كه مضارب دا د مرابحه په طريقه خرڅول اوغواړى. نو هغه به مرابحه په دوې (دوه) زره باندې كوى. دا به نه وائى. چه ماته په دوې (دوه) نيم زره پريوتې دې. ځكه چې غلام نې خو په دوې (دوه) زره باندې اخستې دې.

**د مضاربت په مال د غلام اخستلو نه روسته د ثمن سپارلو نه وړاندې د راس المال**

قَالَ (وَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ) مضارب سره زر درهم دى. فَاشْتَرَى رَبُّ الْمَالِ عَبْدًا بِخَمْسِمِائَةٍ رب المال په پنځه سوه كې يو غلام واخستلو. وَبَاعَهُ إِيَّاهُ بِأَلْفٍ او د مضارب په لاس نې خرڅ كړو. فَإِنَّهُ يَبِيعُهُ مُرَابَحَةً عَلَى خَمْسِمِائَةٍ نو مضارب به دا مرابحة په پنځه سوه باندې خرڅوى. لِأَنَّ هَذَا الْبَيْعَ مَقْضِيٌّ بِجَوَازِهِ لِتَغَايُرِ الْمَقَاصِدِ ځكه چې دا بيع جائز ګرځولې شوې ده. د مقاصد د تغاير په وجه، دَفْعًا لِلْحَاجَةِ د ارتيا دفع كاوه په خاطر، وَإِنْ كَانَ بَيْعَ مِلْكِهِ بِمِلْكِهِ اګرچه دا خپل ملك د خپل ملك په عوض خرڅول دى. إِلَّا أَنَّ فِيهِ شُبْهَةَ الْعَدَمِ، خو په دې كې د عدم جواز شبه ده. وَمَبْنَى الْمُرَابَحَةِ عَلَى الْأَمَانَةِ او د نفع مدار په امانت دې. وَالِاحْتِرَازُ عَنْ شُبْهَةِ الْخِيَانَةِ او شبه د خيانت نه په احتراز ده. فَاعْتُبِرَ أَقَلُّ الثَّمَنَيْنِ، نو كمتر ثمن اعتبار به كولې شى.

**تشريح:** مضارب د رب المال نه په زر درهمه يو غلام واخستلو. چه دا نې د رب المال په پنځه سوه باندې اخستې وو. نو لكه چې مضارب په زر درهمه كې اخستې دې. خو دې به مرابحه [...]ف په پنځه سوه باندې كوى. ځكه چې د رب المال د مضارب په لاس خرڅول، اګرچه خپل ملك د مال په



عوض خرڅول دى. خود مقاصدو او اغراضو مختلف كيدلو په وجه دا بيع جائز ساتلې شوې ده. چه ضرورت مندفع شى. خو په دې كې د عدم جواز شبه ده. حالانكه د مرابحت مدار په امانت باندې دې. چه په دې كې د خيانت شبه هم نه وى. په دې وجه پنځه سوه او يو زر ثمن كې چې كوم كمتر دى. مرابحه لپاره به هم هغه معتبر وى.

وَلَوِ اشْتَرَى الْمُضَارِبُ عَبْدًا بِأَلْفٍ او كه مضارب غلام په زر درهم باندې واخستلو. وَبَاعَهُ مِنْ رَبِّ الْمَالِ بِأَلْفٍ وَمِائَتَيْنِ او په دولس سوه كې نې خرڅ كړو. بَاعَهُ مُرَابَحَةً بِأَلْفٍ وَمِائَةٍ نو مالك به دا د نفع په طور يوولس سوه باندې خرڅه وى. لِأَنَّهُ اعْتُبِرَ عَدَمًا فِي حَقِّ نِصْفِ الرِّبْحِ وَهُوَ نَصِيبُ رَبِّ الْمَالِ ځكه چې دا بيع د نصف نفع په حق كې كومه چې د مالك برخه ده. كالعدم (په نيشت) شمارلې شوې ده. وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوعِ. او دا بيان بيوع كې تير شوې دې.

**تشريح:** كه مضارب په زر درهم واخستلو. او د مالك په لاس نې په دولس سوه كې خرڅ كړو نو مالك به ددې مرابحه په يوولس سوه كوى. ځكه چې دولس سوه كې دوې (دوه) سوه درهم نفع ده چه په دې كې نيمه نفع د مضارب او نيمه د رب المال ده. او نيمه نفع كومه چې د رب المال برخه ده. دهغه په حق كې دا د بيع نه كيدلو برابر ده. لكه څنګه چې بيوع كې تير شو. نو مالك به دا په يوولس سوه باندې مرابحه سره خرڅه وى.

قَالَ (فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ بِالنِّصْفِ) كه مضارب سره زر درهم وى. په نصف نفع باندې فَاشْتَرَى بِهَا عَبْدًا قِيمَتُهُ أَلْفَانِ نو ده د دوې (دوه) زره قيمت غلام واخستلو. فَقَتَلَ الْعَبْدُ رَجُلًا خَطَأً بيا غلام څوك په خطاء باندې قتل كړل. فَثَلَاثَةُ أَرْبَاعِ الْفِدَاءِ عَلَى رَبِّ الْمَالِ نو درې برخې (حصې) فديه به مالك باندې وى. وَرُبُعُهُ عَلَى الْمُضَارِبِ او يوه څلورمه برخه به مضارب باندې وى. لِأَنَّ الْفِدَاءَ مُؤْنَةُ الْمِلْكِ ځكه چې فديه خرچه د ملك ده. فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْمِلْكِ نو دا به په اندازه د ملك وى. وَقَدْ كَانَ الْمِلْكُ بَيْنَهُمَا أَرْبَاعًا، او ملكيت په دوى دواړو كې څلور برخو كاوه سره وو. لِأَنَّهُ لَمَّا صَارَ الْمَالُ عَيْنًا وَاحِدًا ځكه چې كله مال عين واحد شو. چه ددې قيمت دوې (دوه) زره دې. ظَهَرَ الرِّبْحُ نو نفع ښكاره شوه. وَهُوَ أَلْفٌ بَيْنَهُمَا او دا زر په دواړو كې مشترك دى. وَأَلْفٌ لِرَبِّ الْمَالِ بِرَأْسِ مَالِهِ او زر درهم د مالك راس المال دې. لِأَنَّ قِيمَتَهُ أَلْفَانِ، ځكه چې دده قيمت دوې (دوه) زره وو.

**تشريح:** د نصف منفعت مضارب د مضاربت په زر درهمه داسې غلام واخستلو. چه د هغه قيمت دوې (دوه) زره درهم دې. او غلام څوك په خطاء سره قتل كړو. نو فديه چونكه د ملكيت خرج دې. په دې وجه به د فديه وجوب په اندازه دملك وى. يعنى څلورمه برخه به مضارب باندې وى. او درې برخې (حصې) به رب المال باندې وى. ځكه چې راس المال زر درهم وو. او غلام په دې وخت كې د دوې (دوه) زره درهمو دې. نو نيمه نفع پنځه سوه درهم د مضارب شوه. او پنځه سوه د رب المال شوه. او زر درهم د رب المال راس المال دې. نو فديه به هم په دې حساب سره وى.

وَإِذَا فَدَيَا او هركله چې دواړو فديه وركړله. خَرَجَ الْعَبْدُ عَنِ الْمُضَارَبَةِ، نو غلام د مضاربت نه اووتلو. أَمَّا نَصِيبُ الْمُضَارِبِ فَلِمَا بَيَّنَّاهُ، د مضارب برخه خو په هغه وجه (او وتله) كومه چې مونږ بيان كړله. وَأَمَّا نَصِيبُ رَبِّ الْمَالِ فَلِقَضَاءِ الْقَاضِي بِانْقِسَامِ الْفِدَاءِ عَلَيْهِمَا او د مالك برخه ځكه (او وتله) چې قاضى په دوى دواړو د فديه تقسيمولو حكم وركړې وو. لِمَا أَنَّهُ يَتَضَمَّنُ قِسْمَةَ الْعَبْدِ بَيْنَهُمَا ځكه چې دا حكم په دوى دواړو كې د غلام ويش ته متضمن دې. وَالْمُضَارَبَةُ تَنْتَهِي بِالْقِسْمَةِ، او مضاربت په تقسيمولو سره ختم شو. بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د ذكر شوې مسئلې. لِأَنَّ جَمِيعَ الثَّمَنِ فِيهِ عَلَى الْمُضَارِبِ چې په دې كې پوره ثمن مضارب باندې دې. وَإِنْ كَانَ لَهُ حَقُّ الرُّجُوعِ اګرچه ده ته د مالك نه د واپس اخستلو حق دې. فَلَا حَاجَةَ إِلَى الْقِسْمَةِ، نو د تقسيمولو ارتيا نشته. وَلِأَنَّ الْعَبْدَ كَالزَّائِلِ عَنْ مِلْكِهِمَا بِالْجِنَايَةِ، او ځكه چې غلام د جنايت په وجه ګويا دده دملك نه زائل دې. وَدَفْعُ الْفِدَاءِ كَابْتِدَاءِ الشِّرَاءِ او فديه وركول د ابتدائى اخستلو پشان دى. فَيَكُونُ الْعَبْدُ بَيْنَهُمَا أَرْبَاعًا نو غلام به په دوى كي

ږغلور برخو سره مشترك وي لَا عَلَى الْمُضَارَبَةِ د مضاربت د طريقې نه بغير، يَخْدُمُ الْمُضَارِبَ يَوْمًا وَرَبَّ الْمَالِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ نو غلام به يوه ورځ د مضارب او درې ورځې به د مالك خدمت كوي. بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تيرې شوې مسئلې.

تشريح: هركله چې مالك او مضارب د غلام فديه وركړله.نو غلام د مضاربت نه خارج شو.د مضارب برخه ځكه خارج شوه.چه هغه امانت كي پاتې نشوه.بلكه په ضمانت كي شوه.اود رب المال برخه ځكه خارج شوه.چه قاضي په دوى دواړو باندې د فديه تقسيمولو حكم وركړې وو.اود قاضي د فديه تقسيمولو حكم د عهد انقسام ته متضمن دې.اود قسمت په وجه مضاربت منتهى كيږي.په خلاف د ذكرشوې مسئلې،چه په هغې كي پوره ثمن د مضارب په ذمه دې.اګرچه هغه د رب المال نه د واپس اخستلو اختيار دې.نو د ويش هيڅ ارتيا نشته.او په دې وجه هم چې غلام د خطاء قتل كاوه سره ګويا د دواړو د ملك نه او وتلو.او فديه وركول ګويا ابتدائي اخستل دى.اوس به دا غلام په دواړو كي څلور برخو سره مشترك وي.خودا شركت به د مضاربت په طور نه وي.نو غلام به درې ورځې د رب المال او يوه ورځ د مضارب خدمت كوي.په خلاف د مخكنۍ مسئلې،چه هغې كي به د مالك درې برخې (حصې) مضاربت باندې پاتې وى.او د مضارب څلورمه برخه به دده ذاتي تجارت باندې وى.په فوائد ظهيريه كي د توپير يوه وجه دا هم بيان كړې ده.چه په مخكنۍ مسئله كي ضمان دتجارت واجب وو.چه دا د تجارت منافى نه دې.او دلته كي ضمان د جنايت واجب دې چه د تجارت د باب څخه نه دې. ﴿فلا يبقى على المضاربة﴾

### د هلاكيدلو مسئله

قَالَ (فَإِنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفٌ مضارب سره زر درهم دی. فَاشْتَرَى بِهَا عَبْدًا نو ده د هغې په عوض يو غلام واخستلو. فَلَمْ يَنْقُدْهَا حَتَّى هَلَكَتْ او لا تراوسه ئې قيمت نه وو اداكړې،چه زر درهم هلاك شو. يَدْفَعُ رَبُّ الْمَالِ ذَلِكَ الثَّمَنَ نو رب المال به دا ثمن اداكوی. وَرَأْسُ الْمَالِ جَمِيعُ مَا يَدْفَعُ إلَيْهِ رَبُّ الْمَالِ) او هغه واړه به راس المال وی.كوم چې رب المال وركوی. لِأَنَّ الْمَالَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ ځكه چې مال د مضارب په قبضه كي امانت دې. وَلَا يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا، وَالِاسْتِيفَاءُ إنَّمَا يَكُونُ بِقَبْضٍ مَضْمُونٍ اود حق استيفاء په ضمانتي قبضې سره كيږي. وَحُكْمُ الْأَمَانَةِ يُنَافِيهِ حالانكه د امانت حكم د ضمانت منافي دې. فَيَرْجِعُ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى،نو مضارب به بار واپس اخلي. بِخِلَافِ الْوَكِيلِ په خلاف د اخستلو د وكيل، إذَا كَانَ الثَّمَنُ مَدْفُوعًا إلَيْهِ قَبْلَ الشِّرَاءِ كله چې ده ته د اخستلو نه وړاندې ثمن وركړې شوى وى. وَهَلَكَ بَعْدَ الشِّرَاءِ حَيْثُ لَا يَرْجِعُ إلَّا مَرَّةً او هغه د اخستلو نه روسته هلاك شوى وى.چه هغه ئې واپس نشي اخستلې.خو صرف يو ځل، لِأَنَّهُ أَمْكَنَ جَعْلُهُ مُسْتَوْفِيًا،ځكه چې هغه مستوفى كول ممكن دى. لِأَنَّ الْوَكَالَةَ تُجَامِعُ الضَّمَانَ ځكه چې وكالت ضمان سره جمع كيداې شى. كَالْغَاصِبِ إذَا تَوَكَّلَ بِبَيْعِ الْمَغْصُوبِ،لكه غاصب كله چې دې وكيل كړى.د مغصوب د خرڅولو دپاره.

تشريح: مضارب سره زر درهم دى.هغه ددې په عوض يو غلام واخستلو.او اوس د ثمن زر درهم نه وو ادا كړى،چه هغه هلاك شو.نو رب المال به مضارب ته دوباره زر درهم وركوى.چه هغه ثمن اداكړى.اوس كه د اداكولو نه وړاندې هغه هم ضائع شو.نو رب المال به په دريم ځل وركوى.او څومره ځل چې ده مضارب ته مال وركړې دې.هغه به واړه به يو ځائې راس المال وى.مثلاً كه څلور ځله ئې مال وركړو.نو راس المال به څلور زره درهم وى.او مضارب به ضامن نه وى.وجه داده.چه د مضاربه په قبضه كي كوم مال وى.هغه امانت وى.او استيفاء د حق هغه وخت وى.كله چې قبضه ضمانتي وى.حالانكه په قبضې د امانت اود قبضې د ضمانت كي منافات دې.په دې وجه به په مال هلاكيدلو سره مضارب رب المال نه بار بار واپس اخلي.په خلاف د اخستلو د وكيل،كله چې د هغه د اخستلو نه وړاندې ئې ثمن وركړې وى.او هغه د اخستلو نه روسته هلاك شوې وى.چه هغه موكل باندې صرف يو ځل رجوع كولې شى.ځكه چې دلته كي وكيل مستوفى د حق ګرځولې شى.او وجه



داده،چه په وكالت او ضمانت كي هيڅ منافات نشته.بلكه دا دواړه يو ځائې كيداې شى.لكه مثلاً كه مغصوب منه، غاصب د مغصوب شئ د خرڅولو وكيل كړو.نو دا جائز دى.غاصب به وكيل وى.خو صرف د وكالت په وجه به ضمان نه بري كيږى.بلكه مغصوب شئ به په ده باندې مضمون وى.تردې كه چرې دا هغه دده سره هلاك شى.نو ضمان به واجب وى.هركله چې د وكيل قبضه متصف بالضمان شوه.نو په ذكرشوى صورت كي يو ځل رجوع كولې شى.ځكه چې دده قبضه د دين ثمن واجبيدلو نه وړاندې ده.نودا په طريقه د استيفاء نه ده.نو قبضه د ضمان نشوه.بلكه قبضه د امانت شوه. ﴿فلا يتحقق الإستيفاء، فيكون له الرجوع مرةً للإستيفاء﴾

ثُمَّ فِي الْوَكَالَةِ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ يَرْجِعُ مَرَّةً،بيا د وكالت په دې صورت كي به وكيل يو ځل رجوع كوى. وَفِيمَا إذَا اشْتَرَى او په دې صورت كي وكيل واخستل. ثُمَّ دَفَعَ الْمُوَكِّلُ إلَيْهِ الْمَالَ بيا موكل هغه ته د ثمن مال وركړو. فَهَلَكَ او هغه هلاك شو. لَا يَرْجِعُ نو رجوع نشى كولې. لِأَنَّهُ ثَبَتَ لَهُ حَقُّ الرُّجُوعِ بِنَفْسِ الشِّرَاءِ ځكه چې ده ته صرف اخستلو سره د رجوع حق حاصل شوې وو. فَجُعِلَ مُسْتَوْفِيًا بِالْقَبْضِ بَعْدَهُ،د اخستلو نه روسته قبضه كاوه سره دې د حق وصولولو والا اوګرځولې شو. أَمَّا الْمَدْفُوعُ إلَيْهِ قَبْلَ الشِّرَاءِ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ اود اخستلو نه وړاندې وركړې شوې مال دده په قبضه كي امانت دې. وَهُوَ قَائِمٌ عَلَى الْأَمَانَةِ بَعْدَهُ كوم چې د اخستلو نه روسته هم امانت باندې قائم دې. فَلَمْ يَصِرْ مُسْتَوْفِيًا،نو هغه به دده نه دخپل وصول كوونكې نه وى. فَإِذَا هَلَكَ نو هركله چې دا مال هلاك شى. رَجَعَ عَلَيْهِ مَرَّةً نو موكل باندې به يو ځل رجوع كوى. ثُمَّ لَا يَرْجِعُ بيا به دوباره نه اخلي. لِوُقُوعِ الِاسْتِيفَاءِ عَلَى مَا مَرَّ ځكه چې د حق استيفاء اوشوه.لكه څنګه چې پورته تير شو.

تشريح: پوهه شئ:چه چې دلته كي دوې (دوه) صورتونه دى.① يو دا چې موكل د اخستلو وكيل ته د هغه د اخستلو نه وړاندې مال ثمن وركړو.او هغه وكيل سره ضائع شو.نو وكيل د موكل نه يو ځل ثمن اخستلې شى.،، في هذه الصورة،، سره هم دې اړخ ته اشاره ده.② دوهم دا چې وكيل څه شئ اخستې دې.ددې نه روسته موكل هغه ته مال ثمن وركړو.او هغه وكيل سره ضائع شو.نو وكيل د موكل نه په اصل كي ثمن نشى اخستلې.،، وفيما إذا اشترى،، كي هم دا صورت دې.وجه داده.چه موكل كوم مال وكيل ته وركوى.دا هغه سره امانت وى.او كله چې هغه موكل لپاره شئ واخلي.نو په اخستلو سره د وكيل حق واجبيږى.نوكه د اخستلو نه وړاندې وركړې شوې مال د شئ اخستلو نه وړاندې هلاك شى.نو هغه به د امانت نه هلاك وى.اود اخستلو نه روسته به هغه خپل حق د موكل نه اخلي.اوكه دا اخستلو نه روسته هلاك شى.بيا به هم د امانت نه هلاك وى.او وكيل ته به اختيار وى.چه خپل حق موكل نه واخلي.او هركله ئې چې يو ځل واخستلو.نو مستوفى دحق شو. ،، ولا رجوع بعد الإستيفاء،،.او كه موكل د وكيل د اخستلو نه روسته مال وركړو.او هغه هلاك شو.نورجوع نشى كولې.ځكه چې هغه د شئ اخستلونه روسته په مال وصولولو سره مستوفى د حق شو.

## (فَصْلٌ فِي الِاخْتِلَافِ)

ژباړه: (دا) فصل (په بيان) د اختلاف كي دې.

تشريح: ﴿قوله: فصل......﴾ په دې فصل كي د رب المال او مضارب په منځ كي د اختلاف واقع كيدلو بيان دې.او اختلاف چونكه رتبه كي د اتفاق نه روسته دې.ځكه چې بين المسلمين اتفاق اصل دې.په دې وجه ئې دا فصل آخر كي ذكر كړې دې.

### د رب المال اود مضارب د اختلاف بيان

قَالَ (وَإِنْ كَانَ مَعَ الْمُضَارِبِ أَلْفَانِ مضارب سره دوې (دوه) زره درهم دى. فَقَالَ نو هغه رب المال ته اووئيل. دَفَعْتَ إلَيَّ أَلْفًا چې تا ماته زر درهم راكړى وو. وَرَبِحْتُ أَلْفًا او زر درهم ما نفع حاصله كړې ده. وَقَالَ رَبُّ

المَالِ و رب المال اووئیل. لَابَلْ دَفَعْتَ إِلَيْكَ الْفَيْنِ داسې نه ده. بلكه ما تاته دوې (دوه) زره درهم دركړي وو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُضَارِبِ (¹)نود مضارب قول به معتبر وی. وَكَانَ أَبُوحَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا امام ابوحنيفه رحمه الله به مخكې ونيل. الْقَوْلُ قَوْلُ رَبِّ الْمَالِ چې د رب المال قول به معتبر وی. وَهُوَقَوْلُ زُفَرَ او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې. لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَدَّعِي عَلَيْهِ الشَّرِكَةَ فِي الرِّبْحِ خكه چې مضارب رب المال كې د شركت مدعى دې. وَهُوَيُنْكِرُ رب المال ددې منكر دې. وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ او قول د منكر معتبر وی. ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ بيا دوی هغه طرف ته رجوع اوكړله. كوم چې كتاب كې ذكر دی. لِأَنَّ الِاخْتِلَافَ فِي الْحَقِيقَةِ فِي مِقْدَارِ الْمَقْبُوضِ خكه چې دا اختلاف په حقيقت كې مقبوضه مقدار كې دې. وَفِي مِثْلِهِ الْقَوْلُ قَوْلُ الْقَابِضِ او په داسې قسمه كې د قابض قول معتبر وی. ضَمِينًا كَانَ أَوْ أَمِينًا كه هغه ضمين وی. او كه امين وی. لِأَنَّهُ أَعْرَفُ بِمِقْدَارِ الْمَقْبُوضِ، خكه چې د مقبوض مقدار نه هم دې زيات خبر دې.

تشريح: مضارب سره دوې (دوه) زره درهم دی. هغه رب المال ته وائی. چه زردرهم تا ماته راكړی وو. او زر درهم ما نفع حاصل كړې ده. رب المال وائی. داسې نه ده. ما تاته دوې (دوه) زره درهم دركړی وو. نود مضارب قول به معتبر وی. امام ابوحنيفه رحمه الله مخكې ددې قائل وو. چه د رب المال قول به معتبر وی. هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې. وجه داده. چه مضارب په رب المال باندې په نفع كې د شركت مدعى دې. او رب المال ددې نه منكر دې. او قول د منكر ملې كيږی. مرجوع اليه قول كوم چې په كتاب كې ذكر دې. د هغې وجه داده. چه دا اختلاف په حقيقت كې مقبوضه مقدار كې دې. اود مقبوض مال د مقدار نه هم هغه زيات خبر دې. ابن المنذر فرمائی. چه د اهل علمو په دې باندې اتفاق دې. چه قول د عامل معتبر وی. او يوه وجه د امام شافعی رحمه الله نه نقل ده. كه په مال كې نفع وی. نو دواړه به قسم خوری. و الأصح هو الأول.،

وَلَوِاخْتَلَفَا مَعَ ذٰلِكَ فِي مِقْدَارِ الرِّبْحِ او كه ددې سره سره دوی د نفع په مقدار كې هم اختلاف اوكړو. فَالْقَوْلُ فِيهِ لِرَبِّ الْمَالِ نو په دې كې به د رب المال قول قبلولې شی. لِأَنَّ الرِّبْحَ يُسْتَحَقُّ بِالشَّرْطِ خكه چې د نفع استحقاق د شرط په ذريعه وی. وَهُوَيُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ اود شرط استفاده د رب المال د اړخه كيږی. وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ عَلَى مَا ادَّعَى مِنْ فَضْلٍ او په دوی كې چې هريو كس پخپله دعوه زياتوالی باندې گواهان قائم كړی. قُبِلَتْ نو قبلولې به شی. لِأَنَّ الْبَيِّنَاتِ لِلْإِثْبَاتِ خكه چې گواهان د اثبات لپاره وی.

تشريح: او په مقبوضه مقدار كې اختلاف سره سره ئې د نفع په مقدار كې هم اختلاف اوكړو. رب المال وائی. چه راس المال دوې (دوه) زره درهم وو. او ستا لپاره د نفع د دريمې برخې (حصې) شرط وو. مضارب وائی. راس المال زر درهم وو. او زما لپاره نيمه نفع شرط وه. نود نفع په اړه كې به د رب المال اود راس المال په اړه كې به د مضارب قول معتبر وی. د امام مالك، امام احمد، ابوثور، اود ابن المنذر رحمهم الله قول هم دادې. امام شافعی رحمه الله فرمائی. چه د متبايعينو به دوی هم خپلو كې قسم خوری. خكه چې د نفع استحقاق د شرط په ذريعه كيږی. اود شرط استيفاده د رب المال د اړخه كيږی. نو ددې څخه به هغه بنه خبردار وی. البته كه په دوی كې څوك د خپلې زياتوالی دعوه باندې گواهان قائم كړی. نو دده گواهان به قبول وی. خكه چې گواهان د اثبات لپاره وی. په اوضح كې د شيخ رضی الدين بيان نقل دې. چه ما د مبسوط په بعضو شرحو كې كتلې دی. چه د مضارب گواهان به قبلولې شی. ﴿إذ هي المثبتة ذا الملك ثابت لرب المال في كل قدر لا يقوم عليه الحجة للمضارب﴾

---

(¹) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا في العناية (٤٤٨\٧) والكفاية (٤٤٨\٧) وبدائع الصنائع (١٦٥\٦) و الدرالمختار (٥٤٨\٤) والهندية (٣٢٤\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢١٢\٢)_



## په كاروبار كښې د لګولی شوی مال په تعين كښې اختلاف

وَمَنْ كَانَ مَعَهُ أَلْفُ دِرْهَمٍ يوكس سره زر درهم دی. فَقَالَ هغه اووئيل. هِيَ مُضَارَبَةٌ لِفُلَانٍ بِالنِّصْفِ چې دا د فلانی مال دې. په نيمه نفع مضاربت باندې دې. وَقَدْ رَبِحَ أَلْفًا او ده زر درهمه نفع حاصل كړله. وَقَالَ فُلَانٌ او فلانی اووئيل. هِيَ بِضَاعَةٌ دا بضاعت دې. فَالْقَوْلُ قَوْلُ رَبِّ الْمَالِ نو قول به د مال د مالك معتبر وی. لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَدَّعِي عَلَيْهِ تَقْوِيمَ عَمَلِهِ أَوْ شَرْطًا مِنْ جِهَتِهِ أَوْ يَدَّعِي الشَّرِكَةَ خكه چې مضارب په دې باندې د خپل عمل قيمتی كيدلو يا دده د اړخه د شرط يا مال كې د شركت مدعی دې. وَهُوَيُنْكِرُ او هغه منكر دې.

تشريح: يو سړی سره زر درهم دی. هغه وائی. چه دا د فلانی سړی مال دې. چه دا په مضاربت بالنصف دې او فلانی سړې وائی. چه دا مال د بضاعت دې. نود مال د مالك قول به معتبر وی. خكه چې مضارب په ده باندې دعوه كوی. چه زما كار د نفع په اندازه قيمتی دې. يا د هغه د اړخه د شرط مدعی دې. يا هغه په مال كې د شركت مدعی دې. يعنی په مضاربت فاسده كې د اجرمثل او په مضاربت صحيحه كې د نفع، او مضاربت ختميدلو سره په موجوده مال كې د شركت مدعی دې. او رب المال په هرحال كې منكر دې.، و القول قول المنكر،،

وَلَوْ قَالَ الْمُضَارِبُ او كه مضارب اووئيل. أَقْرَضْتَنِي چې تا ماته دا مال پور راكړې وو. وَقَالَ رَبُّ الْمَالِ او مالك د مال اووئيل. هُوَ بِضَاعَةٌ أَوْ وَدِيعَةٌ چې دا بضاعت، يا امانت، يا مضاربت وو. فَالْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ وَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمُضَارِبِ نو قول به د مالك او گواهان به د مضارب معتبر وی.

تشريح: كه مدعی سړی اووئيل. چه تا ماته دا مال پور باندې راكړې وو. او رب المال وائی. چه دا په بضاعت يا امانت وو. نو قول به د رب المال قبول وی. او گواهان به د مضارب راجح وی. خكه چې مذكوره سړې په دې باندې د تملك مدعی دې. او رب المال ددې منكر دې. بيا په كتاب كې مذكوره سړې په مضارب سره تعبير كړې شوې دې. حالانكه دوی دواړه د مضاربت په نه كيدلو باندې متفق دی. او په دې اړه كې تاج الشريعه او صاحب د عنايه رحمه الله فرمائی. چه دا ددې احتمال په وجه دی. چه شايد (كيداې شی) دې مخكې مضارب وی. بيا ئې ده ته پور وركړې وی. خودا توجيه قرين قياس نه ده. نو غوره توجيه د صاحب نتائج ده. چه مضارب سره تعبير كول په مشاكلت مبنی دی. په طريقه د قول د الله تعالی ﴿تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ﴾ و قول الشاعر~

قالوا إقترح شيئاً نجد لك طبخه قلت إطبخوا لي جبة و قميصاً

لِأَنَّ الْمُضَارِبَ يَدَّعِي عَلَيْهِ التَّمَلُّكَ خكه چې مضارب په ده باندې د نفع د ملكيت دمدعی دې. وَهُوَيُنْكِرُ. او هغه منكر دې.

تشريح: صاحب د نهايه او صاحب د عنايه رحمه الله تملك په تملك د ربح باندې محمول كړې دې. نو مطلب دا شو. چه كله ده اووئيل. چه تا ماته پور راكړې وو. نو گويا ده دا دعوه اوكړله. چه پوره نفع زما ملك دې. خو صاحب د نتائج رحمه الله فرمائی. چه دلته په بنكاره تملك نه د صاحب كتاب مراد د اصل مال تملك دې. خكه چې د استقراض دعوه د مال د تملك دعوه ده. پاتې شو تملك د نفع، نو په دې دعوه كې تملك د اصل مال تابع دې. او په دې وجه هم چې د نفع د تملك دعوه كله كله د اصل مال تملك دعوې نه منفك (او جدا) وی. لكه د مضاربت د دعوه په صورت كې مدعا صرف د ربح (او نفع) استحقاق وی. د اصل مال استحقاق نه وی. ﴿لادعاء حجر و تملك الربح لا يدل على تمام المدعى فيما نحن فيه﴾

وَلَوِادَّعَى رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارَبَةَ فِي نَوْعٍ كه رب المال په خاص ډول كې د مضاربت دعوه اوكړله. وَقَالَ الْآخَرُ او دوهم اووئيل. مَا سَمَّيْتَ لِي تِجَارَةً بِعَيْنِهَا چې تا ما لپاره هيڅ خاص تجارت نه وو بيان كړې. فَالْقَوْلُ لِلْمُضَارِبِ نو قول به

د مضارب معتبر وی. لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ الْعُمُومُ وَالْإِطْلَاقُ، ځکه چې مضاربت کې اصل عموم او اطلاق دي. وَالتَّخْصِيصُ يُعَارِضُ الشَّرْطَ، او تخصيص د شرط په عارض (راپيښيدلو) سره وی. بِخِلَافِ الْوَكَالَةِ لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ الْخُصُوصُ. په خلاف د وکالت، چې دې کې اصل خاص کيدل دی.

**تشريح:** رب المال دعوه اوکړله. چه ما مضاربت په يو خاص ډول کې کړخولې وو. او مضارب اووئيل. چه تا د تجارت کوم خاص ډول نه وو بيان کړی. نود مضارب قول به دده قسم سره قبلولې شی. آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی. امام زفر رحمه الله فرمائی. چه د رب المال قول به معتبر وی. ځکه چې د اجازت استفاده هم دده د ارخه کيږی. زموږ دليل دادې. چه مضاربت کې اصل دادې. چه دا عام وی. په دې دليل که رب المال اووائی. چه «خذ هذا المال مضاربةً بالنصف» نو مضاربت صحيح کيږی. او هغه ته د ټولو تجاراتو حق حاصليږی. که د مطلق عقد مقتضی عموم نه وو. نو عقد به نه صحيح کيدلو. پاتې شو تخصيص نودا د شرط عارض په وجه کيږی. نودا ثابتول پکار دی.

وَلَوِ ادَّعَى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نَوْعًا او که په دوی کې هر يو دجدا ډول دعوه اوکړله. فَالْقَوْلُ لِرَبِّ الْمَالِ نود رب المال قول به معتبر وی. لِأَنَّهُمَا اتَّفَقَا عَلَى التَّخْصِيصِ، ځکه چې دوی دواړه تخصيص باندې متفق دی. وَالْإِذْنُ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ، او اجازت د رب المال د اړخه مستفاد کيږی. نو قول به هم د هغه قبلولې شی. وَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمُضَارِبِ او که دواړو ګواهان قائم کړل. نود مضارب بينه به قبول وی. لِحَاجَتِهِ إِلَى نَفْيِ الضَّمَانِ، ځکه چې ده ته د ضمان د نفی اړتيا دې. وَعَدَمِ حَاجَةِ الْآخَرِ إِلَى الْبَيِّنَةِ او دوهم ته د ګواهانو اړتيا نشته. وَلَوْ وَقَّتَتِ الْبَيِّنَتَانِ وَقْتًا او که د دواړو ګواهانو تاريخ بيان کړو. فَصَاحِبُ الْوَقْتِ الْأَخِيرِ أَوْلَى نود آخری تاريخ والا بينه به راجح وی. لِأَنَّ آخِرَ الشَّرْطَيْنِ يَنْقُضُ الْأَوَّلَ ځکه چې آخرې شرط مخکنې شرط ماته وی.

**تشريح:** که مضارب او رب المال کې هريو کس جلا جلا نوع بيان کړله. مثلاً مضارب اوئيل. چه د کپړې تجارت وو. او رب المال اووئيل. چه د غلې وو. نود رب المال قول به قبول وی. ځکه چې ددوی دواړو په دې باندې اتفاق دې. چه مضاربت خاص ډول کې وو. او اجازت د رب المال د اړخه حاصليږی. نو قول به هم د هغه قبول وی. اوکه دوی دواړه ګواهان قائم کړی. نود مضارب ګواهان به راجح وی. ځکه چې د تجارت دکوم نوع هغه مدعی دې. د هغې د اجازت ثابتولو اړتيا هم هغه ته دې. چه هم دده نه ضمان منتفی شی. رب المال ته د ګواهانو اړتيا نشته. «لأن ما يدعيه ثبت بقوله إذ هو المستهلك بالأصل».

## كتاب الوديعة

ژباړه: (دا) کتاب د وديعت (ايخودلو په بيان کې) دې.

**تشريح:** صاحب د قدوری رحمه الله د مضاربت نه روسته د وديعت ذکر کوی. ځکه چې ايداع او مضاربت دواړه امانت کې مشترک دی. په دې وجه مضاربت نه روسته وديعت راوړلې شو. بيا وديعت د شی د تمليک نه بغير امانت وی. او عاريت سره د منافعو د تمليک نه د عوض نه بغير امانت وی. او هبه خالص د تمليک عين بلا عوض نوم دې. او اجاره کې عوض سره د منفعت تمليک کيږی. په دې وجه مصنف د وديعت نه روسته عاريت، هبه او اجاره هم په دې ترتيب سره ذکر کوی. چه په دې کې ترقی من الادنی الی الاعلی ده.

ع~ فأول القطر غيث ثم ينسكب

**فائده:** د امانت حفاظت د دارينو د سعادت موجب دې. او خيانت د دواړه جهانو د شقاوت (بدبختۍ) سبب دې. د نبی کريم ﷺ ارشاد دې. «الأمانة تجر الغنى و الخيانة تجر الفقر» امانت داری مالداری راولی. او خيانت محتاجی او فقيری راولی. «و فی المثل: الأمانة إقامة المملوك مقام المملوك و الخيانة أقامة المملوك مقام المملوك»

**قوله: الوديعة:** وديعةٌ لغتاً فعيلةٌ د مفعوله په معنی ده. ودع معناً د مطلق ترک (پريښودلو) نه مشتق دې. قال الله



تعالى ﴿مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى﴾ (قرئ بالتخفيف و التشديد) په حديث د ابن عباس رضی الله عنهما کې دی. «أن النبی ﷺ قال لينتهين أقوام عن ودعهم الجماعات أو ليختمن على قلوبهم ثم ليكتبن من الغافلين» ددې نه معلومه شوه. چه شمر چې دا وئيلی دی. چه (زعمت لنحوية أن العرب اماتوا مصدر يدع) دا غلط دی. ځکه چې نبی کريم ﷺ افصح العرب دې. او د نبی کريم ﷺ نه ددې کلمې تکلم صحيح حديث سره ثابت نه دې. وديعت ته وديعت ځکه وائی. چه دا امين (امانتدار) سره پريښودلې شی. او ودع معنی د محفوظ ساتلو هم ده،، يقال ودع و تودع الثوب،، کپړه ئې محفوظ کړله.

قال الراعی~
لناء نشرق الأحساب منه به نتودع الحسب المصو نا

هم ددې نه ايداع ده. په دې معنی چې يو کس سره امانت ايخودل. قال ﷺ «الإيمان نور الله تعالى أودعه فی قلوب المؤمنين»

په اصطلاح د شرع کې ايداع دې ته وائی. چه دخپل مال په ساتنه کاوه بل چاته قابو (او قدرت) ورکړې شی. په دې شرط چې هغه ددې قابل وی. چه هغې باندې قبضه ثابته شی. که تختيدونکې غلام وديعت کيخودلې شی. يا کوم شئ چې په درياب کې اوغورزيدلو، هغه ئې وديعت کيخودلو نودا صحيح نه ده. کوم شئ چې د بل کس په نګرانئ (او حفاظت) کې پريخودلې شی. هغې ته وديعت وائی. او ددې جمع ودائع ده.

قال لبيد بن ربيعه~ و ما المال و الأهلون إلا ودائع و لا بد يوماً أن ترد الودائع

اوکوم کس چې مال په وديعت کې پريږدی. هغه ته مودِع (بکسر الدال) اود کوم کس سره چې پريخودلې شی. هغه ته مودَع (بفتح الدال) او امين وائی.

**فائده:** په وديعت او امانت کې فرق دادې. چه امانت عام دې. او وديعت خاص دې. ځکه چې وديعت کې په غير سره حفاظت کول قصداً مطلوب دی. او امانت کله کله د قصد نه بغير هم کيږی. مثلاً هوا د يو کس کپړه اوچته کړله. اود بل کس په کور کې ئې اوغورزوله. نودا کپړه د هغه سره امانت ده. او بله دا چې وديعت د عقد په ذريعه کيږی. په امانت کې عقد ضروری نه دې. بيا په وديعت کې ،، اعاده الى الوفاق،، سره ضمانت نه لازميږی. په خلاف د امانت، چه په دې کې ضمان واجبيږی. خو صاحب د نتائج په دې باندې اوګد بحث کړې دې. د هغې خلاصه داده. چه په دې دواړو کې مباينت دې.

### د وديعت شرعی حيثيت

قَالَ (الْوَدِيعَةُ أَمَانَةٌ فِي يَدِ الْمُودَعِ) وديعت مودع سره امانت وی. (إِذَا هَلَكَتْ) که هلاک شی. (لَمْ يَضْمَنْهَا) نو ضامن نه وی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه د نبی کريم ﷺ ارشاد دې. {لَيْسَ عَلَى الْمُسْتَعِيرِ غَيْرِ الْمُغِلِّ ضَمَانٌ} چې غير خائن مستعير باندې ضمان نشته. وَلَا عَلَى الْمُسْتَوْدَعِ غَيْرِ الْمُغِلِّ ضَمَانٌ} او نه په غير خائن مستودع باندې، [1] وَلِأَنَّ بِالنَّاسِ حَاجَةً إِلَى الِاسْتِيدَاعِ، او ځکه چې خلګو ته د وديعت ايخودلو اړتيا وی. فَلَوْ ضَمَّنَّاهُ نو که مونږه مستودع ضامن اوګرځوو. يَمْتَنِعُ النَّاسُ عَنْ قَبُولِ الْوَدَائِعِ نو خلګ به د وديعت قبلولو نه منع شی. فَتَتَعَطَّلُ مَصَالِحُهُمْ او ددوی مصلحتونه به باطل شی.

**تشريح:** مودع سره مال د وديعت امانت وی. که دده د فعل (او حرکت) نه بغير ضائع شی. نو تاوان به نه وی. دا د حضرت ابوبکر، علی، ابن مسعود رحمهم الله نه نقل دی. او قاضی شريح، ابراهيم نخعی، ابوالزناد، سفيان ثوری، امام مالك، امام شافعی رحمهم الله وغيره اکثر اهل علم ددې قائل دی. ځکه چې دارقطنی او بيهقی «عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده.....» روايت کړې دې. چه «أن النبی ﷺ قال ليس على المستعير غير المغل.......»

1) من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده عن النبی ﷺ أخرجه الدارقطنی فی سننه (۴۱۱۳) رقم ۱۶۸)_

سوال: دارقطني ونيلي دي چه دا حديث ضعيف دې. ځکه چې ددې دوې (دوه) راويان عمرو بن عبدالجبار او عبيد بن حسان ضعيف دي. ابن حبان په كتاب الضعفاء كي ونيلي دي. چه عبيده خو د ثقاتو نه هم موضوعات روايت كوي ؟

جواب: د دارقطني مذكوره قول عمرو او عبيده دواړه ضعيف دي. جرح مبهم ده. چه دا مقبول نه ده. بيا عمرو بن عبدالجبار د عبيده خورني دې. چه دده په اړه كي زمونږ د علم مطابق هيڅ چا تعاقب نه دې كړې. سوا ددې نه چې صرف ونيلي دي،، له مناكير، پاتې شو عبيده بن حسان، نو امام بخاري رحمه الله پخپل تاريخ كي دې ذكر كړې دې. او هيڅ جرح ئې نه ده كړې. ددې نه علاوه د ذكر شوي روايت شواهد موجود دي. د ابن ماجه مرفوع روايت دې. «من أودع وديعةً فلا ضمان عليه» د دارقطني مرفوع روايت دې. «لا ضمان على مؤتمن» په جامع د سفيان ثوري رحمه الله كي د حضرت علي او ابن مسعود رضي الله عنه نه موقوف روايت دې. «قالا ليس على المؤتمن ضمان» په سنن سعيد بن منصور كي د حضرت جابر رضي الله عنه نه نقل دي. «أن أبابكر قضى في وديعة كانت في جراب فضاعت أن لا ضمان منها» په مصنف د عبدالرزاق كي د حضرت عمر رضي الله عنه نه نقل دي. «قال العارية بمنزلة الوديعة لا ضمان منها إلا أن يتعدى» د حضرت علي رضي الله عنه نه نقل دي. «ليس على صاحب العارية ضمان» ( و إسناده حسن).

## پخپله يا پخپل اهل وعيال سره د وديعت حفاظت ضروري دي

قَالَ (وَلِلْمُودَعِ أَنْ يَحْفَظَهَا بِنَفْسِهِ) و مودع ته اختيار دې. چه د وديعت ساتنه اوكړي. پخپله (وَبِمَنْ فِي عِيَالِهِ) يا په ذريعه د هغه چا چې دده په عيال كي دي. لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَلْتَزِمُ حِفْظَ مَالِ غَيْرِهِ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي يَحْفَظُ مَالَ نَفْسِهِ ځكه ښكاره هم داده. چه ده د مال غير د ساتنه انتظام په داسې طريقه كړې دې. په كومه طريقه چې دې د خپل مال ساتنه كوي. وَلِأَنَّهُ لَا يَجِدُ بُدًّا مِنَ الدَّفْعِ إِلَى عِيَالِهِ او ځكه چې دده لپاره د خپل عيال ته د وركاوه نه خلاصي نشته. لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ مُلَازَمَةُ بَيْتِهِ ځكه چې دده لپاره هر وخت خپله كوټه كي اوسيدل ممكن نه دي. وَلَا اسْتِصْحَابُ الْوَدِيعَةِ فِي خُرُوجِهِ او نه بهر ته تللو كي هر وخت وديعت خپل ځان سره ايخودل ممكن دي. فَكَانَ الْمَالِكُ رَاضِيًا بِهِ نو مالك په داسې ساتنه سره راضي شوې دې.

تشريح: كه مودع د مال وديعت حفاظت پخپله كوي. يا ئې پخپل اهل وعيال كوي. په دواړو صورتونو سره جائز دې. امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي. د امام شافعي او اشهب مالكي رحمهما الله په نيز اهل وعيال سره پرېښول جائز نه دي. كه وديعت ضائع شو. نو ضامن به وي. ځكه چې مالك دا شئ صرف د مودع په حفاظت كي وركړې وو.

زمونږ دليل ① هغه روايت دې. كوم چې ابن اسحاق په قوي سند سره ذكر كړې دې. «أنه صلى الله عليه وسلم كانت عنده ودائع فلما أراد الهجر أودعها عند أم أيمن و أمر عليا رضي الله عنه أن يردها على أهلها قال فأقام علي بن أبي طالب رضي الله عنه خمس ليال و أيامها حتى أدى عن النبي صلى الله عليه وسلم الودائع التي كانت عنده للناس» ② ددې نه علاوه د وديعت مالك ته دا خبره پخپله هم معلومه ده. چه زه د كوم كس سره وديعت ايږدم. هغه د وديعت په وجه نه هر وخت په كور كي كيناستلې شي. او نه وديعت هر يو خانې ته د ځان سره اوړلې شي. خامخا به ئې د خپل كور والا خلقو سره پرېږدي. ددې باوجود چې هر كله هغه وديعت دده سره ايخودې دې. نو هغه پخپله په دې راضي شوې دې.

قوله: في عياله د عيال نه مراد هغه خلگ دي. كوم چې دده سره اوسيږي. كه حقيقتاً وي او كه حكماً وي. كه په نان نفقه كي شريك وي. او كه نه وي. لكه مثلاً ښځه، اولاد، مور او پلار، خاص ګوانډي ، خپل غلام، وينځه وغيره، ( خو په ښځه او ولد صغير كي حقيقي اوسيدل ضروري نه دي ). نو كوم اجنبي چې دده سره اوسيږي. هغه سره د وديعت په ايخودلو به ضمان نه لازميږي. بيا ذخيره كي دي. چه اهل وعيال سره د وديعت ايخودلو جواز هغه وخت دې. كله چې هغه امانت دار وي. ګنې جائز نه دې. په فتاوى ابوالليث كي هم دغه ډول دي. په خزانة الفقه كي دي. «لا ضمان على المودع إلا في ثلاثة أشياء التقصير في حفظها و خلطها بماله و منعها عن مالكها بعد الطلب»

## د خپل اهل و عيال نه علاوه بانديې د وديعت حفاظت كولو كښې د ضمان حكم



(فَإِنْ حَفِظَهَا بِغَيْرِهِمْ) نو كه ددوى نه علاوه بانديې ئې حفاظت اوكړو. (أَوْ أَوْدَعَهَا غَيْرَهُمْ) يا ئې غير سره وديعت كېخودلو (ضَمِنَ) نو ضامن به وي. لِأَنَّ الْمَالِكَ رَضِيَ بِيَدِهِ ځكه چې مالك دده په قبضه بانديې راضي شوې دې. لَا بِيَدِ غَيْرِهِ د غير په قبضه نه دې ( راضي شوې).

تشريح: كه مودع مال وديعت د خپل عيال نه سوا د بل چا په حفاظت كي وركړو. يا ئې د بل چا سره وديعت كېخودلو. نو ضامن به وي. ځكه چې مالك د مستودع په قبضې سره راضي دې. د غير قبضې سره (راضي) نه دې. نو د غير په قبضه كي وركول، د مالك د رضا نه بغير شو. ممكن ده.

وَالْأَيْدِي تَخْتَلِفُ فِي الْأَمَانَةِ او لاسونه په امانت كي مختلف كيږي.

تشريح: كه څوك اووائي. چه لكه څنګه دده لاس دې. دغه شان د بل لاس دې؟ دې عبارت كښې ددې خواب دې. چه داسې نه ده. بلكه د امانت په طور د خلګو لاسونه مختلف كيږي. چه بعض خلګ د امانت پوره نګران او ساتنه كونكي وي. او بعض خلګ خيانت ګر وي.

وَلِأَنَّ الشَّيْءَ لَا يَتَضَمَّنُ مِثْلَهُ او ځكه چې شئ خپل مثل ته نه متضمن كيږي. كَالْوَكِيلِ لَا يُوَكِّلُ غَيْرَهُ لكه چې وكيل د ځان نه علاوه ( بل كس) نشي وكيل كولې.

تشريح: مستودع د غير سره په دې وجه هم وديعت نشي ايخودلې. چه مالك وديعت دده سره ايخدې دې. او شئ خپل مثل ته متضمن نه وي. بلكه كمتر ته متضمن وي. لكه چې وكيل ته دا اختيار نشته. چه هغه غير ( د ځان نه علاوه بل څوك) وكيل كړي. دغه ډول مضارب ته دا اختيار نشته. چه راس المال بل چاته مضاربت بانديې وركړي. البته د بضاعت وغيره وركاوه اختيار وي. ځكه چې دا د مضاربت نه كمتر دې.

سوال: كه څوك دا اووائي. چه ده وديعت نه دې وركړې. بلكه د غير په حرز ( د ساتنه په خانې) كي ئې ايخودې دې

وَالْوَضْعُ فِي حِرْزِ غَيْرِهِ إِيدَاعٌ او د بل د حفاظت په خانې كي ايخودل هم وديعت وركول دي. إِلَّا إِذَا اسْتَأْجَرَ الْحِرْزَ خو كله چې د حفاظت خانې په كرايه بانديې اخستې شوې وي. فَيَكُونُ حَافِظًا بِحِرْزِ نَفْسِهِ. چې په دې صورت كي د حفاظت ذاتي خانې كي ايخودل هم وديعت وركول دي.

تشريح: سره ددې خواب دې. چه د بل په ساتنه كي ايخودل هم دا وديعت وركول دي. نو لكه څنګه چې صراحت سره د غير په ساتنه كي وركاوه سره ضامن كيږي. دغه ډول د غير د ساتنه خانې كي ايخودلو سره به هم ضامن كيږي.

قَالَ (إِلَّا أَنْ يَقَعَ فِي دَارِهِ حَرِيقٌ) خو كله ئې چې د حفاظت خانې په كرايه بانديې اخستې وي. چه په دې صورت كي به د حفاظت ذاتي خانې سره حفاظت كونكې وي. البته كه اور اولګي. دده په كور كي. (فَيُسَلِّمَهَا إِلَى جَارِهِ) نو وردې كړي. خپل ګوانډي ته. (أَوْ يَكُونَ فِي سَفِينَةٍ) يا دې په كښتۍ كي وي. (فَخَافَ الْغَرَقَ) و ده ته د ډوبېدلو خطره وي. (فَيُلْقِيَهَا إِلَى سَفِينَةٍ أُخْرَى) نو په بله كښتۍ كي دې اوغورزوي. لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ طَرِيقًا لِلْحِفْظِ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ ځكه چې دې صورت كي د حفاظت هم دا طريقه متعين شوه. فَيَرْتَضِيهِ الْمَالِكُ نو مالك به په دې سره راضي وي. وَلَا يُصَدَّقُ عَلَى ذَلِكَ او په دې اړه كي به تصديق نشي كولې. إِلَّا بِبَيِّنَةٍ مګر په ګواهانو سره. لِأَنَّهُ يَدَّعِي ضَرُورَةً مُسْقِطَةً لِلضَّمَانِ بَعْدَ تَحَقُّقِ السَّبَبِ ځكه چې دې د داسې ضرورت مدعي دې. چه دا ضمان ساقطه وي. د سبب د تحقق نه پس. فَصَارَ كَمَا إِذَا ادَّعَى الْإِذْنَ فِي الْإِيدَاعِ. نو داسې شوه. لكه چې د وديعت ايخودلو د اجازت دعوه اوكړي. قَالَ (فَإِنْ طَلَبَهَا صَاحِبُهَا فَحَبَسَهَا) بيا كه مالك وديعت طلب كړو. او هغه منع كړو. (وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهَا ضَمِنَهَا) حالانكه هغه وركولې شو. نو ضامن به وي. لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ بِالْمَنْعِ، ځكه چې هغه منع كولو سره متعدي شو. وَهَذَا

لِأَنَّهُ لَمَّا طَالَبَهُ اودا خکه چې هرکله مالك وديعت طلب کړو. لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِإِمْسَاكِهِ بَعْدَهُ نو ددې نه روسته هغه ددې په ايخودلو باندې راضي پاتې نشو. فَيَضْمَنُهُ بِحَبْسِهِ عَنْهُ. نو په منع کولو سره به ضامن وي.

تشريح: د مخکنۍ قول «فإن حفظها بغير هم ضمن» نه استثناء ده. مطلب دادې چه د عيال نه د علاوه په ساتنه کې ور کاوه سره د ضمان وجوب هغه وخت دې. کله چې په قصد او اختيار سره وي. که د مجبورۍ په حالت کې ئې ورکړو. نو ضامن به نه وي. مثلاً دده په کور کې اور اولګيدلو. په دې وجه ده خپل ګاونډي ته ورکړو. يا دې په کښتۍ کې سور وو. نود غرقيدلو د يرې ئې په بله کښتۍ کې اوغورزولو. نو ضامن به نه وي. خکه چې داسې صورت کې د ساتنه هم دا طريقه متعين ده. چه مالك به يقيناً هم په دې سره راضي وي. بيا که مودع دا اووائي. چه د ذکرشوي صورت راپيښيدلو په وجه داسې کړې وو. نودا خبره به د ګواهانو نه بغير نشي منلې کيدلې. خکه چې دده د ارخه غير ته ورکول اوموندلې شو. چه دا موجب د ضمان دې. او هغه په ذکر شوي قول سره د ضمان ساقطيدلو مدعي دې. نو ګواهانو سره ثابتول به ضروري وي. لکه مثلاً که هغه دا اووائي. چه ماته مودع له د ور کاوه اجازت راکړې شوې وو. نودا خبره به د ګواهانو نه بغير نه قبليږي.

قَالَ (وَإِنْ خَلَطَهَا الْمُودَعُ بِمَالِهِ حَتَّى لَا تَتَمَيَّزُ) که مودع مال وديعت خپل مال سره ملاوْ کړو. په داسې طريقه چې نشو جدا کيدلې. ضَمِنَهَا نو ضامن به وي. ثُمَّ لَا سَبِيلَ لِلْمُودَعِ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ (١) بيا مودع لپاره هيڅ لاره نشته. (د تاوان) وديعت باندې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي. إِذَا خَلَطَهَا بِجِنْسِهَا که وديعت ئې هم ددې دجنس سره ملاوْ کړو. شَرِكَهُ إِنْ شَاءَ) نو په دې کې به شريك وي. که غواړي. مِثْلُ أَنْ يَخْلِطَ الدَّرَاهِمَ الْبِيضَ بِالْبِيضِ وَالسُّودَ بِالسُّودِ مثلاً سپين دراهم ئې د سپينو دراهمو سره او توردراهم ئې د تورو دراهمو سره، وَالْحِنْطَةَ بِالْحِنْطَةِ يا غنم ئې د غنمو سره، وَالشَّعِيرَ بِالشَّعِيرِ يا اوربشې ئې د اوربشو سره ملاوْ کړل.

تشريح: که مودع وديعت خپل مال سره ملاوْ کړو. نو ددې څلور صورتونه دي. ① خلط په طريقه د مجاورت سره د جلا کيدلو په آسانتيا، يعنې په داسې طريقه ئې يو ځائې کړي. چه جلا کيدلې شي. لکه سپين دراهم د تورو دراهمو سره، يا دراهم د دنانيرو سره، يا غوزان د بادامو سره ملاوْ کړي. نو په دې صورت کې به بلا خلاف ضامن نه وي. ② خلط په طريقه د مجاورت سره د جلا کاوه د مشکل کيدلو، يعنې په داسې طريقه ملاوْکړي. چه جلا کول متعذر شي. لکه غنم د اوربشو سره ملاوْ کړي. په دې صورت کې به بلا خلاف ضامن وي. ③ خلط د جنس خلاف جنس سره په طريقه د ملاوټ (او حل کولو)، لکه د کونځلو تيل د زيتون تيلو سره ملاوول، په دې صورت کې به هم بلا خلاف ضامن وي. ④ خلط د جنس مع الجنس، لکه سپين دراهم د سپينو دراهمو سره ملاوول. يا تور دراهم د تورو دراهمو سره ملاوول، يا غنم د غنمو سره اواوربشې د اوربشو سره ملاوول، دا صورت مختلف فيه دې. د امام ابوحنيفه ، امام شافعي ، اود امام احمد رحمهم الله په نيز به ضامن وي. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به دده ته اختيار وي. که غواړي. ضمان دې واخلي. او که غواړي ملاوْ شوي کې دې شريك شي. «و قال مالك رحمه الله شاركه بلا خيار».

**په ذکرشوي مسئله کښې د صاحبينو او امام صاحب رحمهم الله دلائل**

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الْوُصُولُ إِلَى عَيْنِ حَقِّهِ صُورَةً چې ده ته خپل عين حق ملاويدل صورتاً ممکن نه دي. وَأَمْكَنَهُ مَعْنًى بِالْقِسْمَةِ او معناً ممکن دی. دده سره په تقسيمولو، فَكَانَ اسْتِهْلَاكًا مِنْ وَجْهٍ دُونَ

(١) القول الراجح هو قول الإمام الأعظم m كذا في ملتقى الأبحر (٤٧١\٣) وكنز الدقائق (٣٠٤) والبحر الرائق (٢٧٦\٧) وردالمحتار (٥٥٤\٤) والهندية (٣٤٧\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢١٤\٢)_



وَجْهٍ نودا من وجه استهلاك دې. او من وجه نه دې. فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّهِمَا شَاءَ. نو کوم طرف ته چې غواړي. مائل دې شي.

تشريح: د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه مودع لپاره عين حق ته رسيدل صورتاً ممکن نه دي. خو معناً ممکن دي په دې طريقه چې مستودع سره ويش اوکړي. خکه چې کوم شيان کيل يا وزن کيږي. هغې کې ويش سره بالاجماع جداوالې او تعيين کيږي. په دې وجه شريکينو کې هريو خپله برخه د رضا او قضاء نه بغير اخستلې شي. نو وديعت په يو لحاظ سره مستهلك شو. او يو لحاظ سره غير مستهلك شو. نو که غواړي. د هلاك طرف ته دې مائل شي. ددې د مثل ضامن دې کړي. او که غواړي. قيام طرف ته دې مائل شي. او په ملاوْ شوي کې دې شريك شي.

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ چې دا په هرشان استهلاك دې. لِأَنَّهُ فِعْلٌ يَتَعَذَّرُ مَعَهُ الْوُصُولُ إِلَى عَيْنِ حَقِّهِ، خکه دا داسې فعل (حرکت) دې. چه ددې په موجودګۍ کې عين حق ته رسيدل مشکل دي. وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْقِسْمَةِ اود تقسيمولو هيڅ اعتبار نشته. لِأَنَّهَا مِنْ مُوجَبَاتِ الشَّرِكَةِ خکه چې دا د شرکت د احکامو څخه دې. فَلَا تَصْلُحُ مُوجِبَةً لَهَا، نود شرکت موجب کيدلو لائق به نه وي.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دې. چه يو ځائې کول هرلحاظ سره د وديعت استهلاك دې. خکه چې ملاوول يو داسې فعل دې. چه ددې په موجودګۍ کې عين حق ته د مودع رسيدل محال (او ناممکن) دې. اود بنده ګانو د ارخه استهلاك هم دادې. چه شئ عيب دار کړي. «و أما إنعدام الحل فبتخليق الله تعالى» پاتې شو تقسيمول نو ددې هيڅ اعتبار نشته. خکه چې دا خود شرکت د احکامو څخه دې. نودا د شرکت موجب کيدلو نشي لائق کيدلې. يعنې هرکله چې په شرکت کيدلو باندې دا حکم کيږي. چه ويش کړې شي. نو ويش داسې شئ نشي کيدلې. چه دا شرکت واجب کړي.

وَلَوْ أَبْرَأَ الْخَالِطَ که مودع ملاوهونکې برى کړو. لَا سَبِيلَ لَهُ عَلَى الْمَخْلُوطِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو دده لپاره مخلوط باندې (د شرکت يا د تاوان) هيڅ لاره نشته. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا فِي الدَّيْنِ وَقَدْ سَقَطَ. خکه چې دده حق صرف په دين کې وو. چه هغه ساقط شو. وَعِنْدَهُمَا بِالْإِبْرَاءِ تَسْقُطُ خِيَرَةُ الضَّمَانِ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز برى کولو سره صرف دتاوان اختيار ساقط شو. فَيَتَعَيَّنُ الشَّرِكَةُ فِي الْمَخْلُوطِ، نو مخلوط کې شرکت متعين شو. وَخَلْطُ الْخَلِّ بِالزَّيْتِ وَكُلِّ مَائِعٍ بِغَيْرِ جِنْسِهِ يُوجِبُ انْقِطَاعَ حَقِّ الْمَالِكِ إِلَى الضَّمَانِ، د کونځلو تيل د زيتون تيلو سره، او هر نرم (بهيدونکې) شئ ددې د غير جنس سره ملاوول، د مالك حق منقطع کيدل واجبوي. ضمان طرف ته، وَهَذَا بِالْإِجْمَاعِ اودا بالاجماع ده. لِأَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ صُورَةً خکه چې دا صورتاً استهلاك دې. وَكَذَا مَعْنًى لِتَعَذُّرِ الْقِسْمَةِ بِاعْتِبَارِ اخْتِلَافِ الْجِنْسِ، او دغه شان معناً هم د ويش مشکل کيدلو په بناء باندې، د اختلاف جنس په اعتبار سره.

تشريح: د امام صاحب او صاحبينو رحمهم الله د ذکر شوي اختلاف ثمره (او نتيجه) ده. چه که مودع يوځائې کونکې برى کړو. نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د يوځائې کړې شوي د ويش هيڅ صورت نشته. خکه چې د دوى په نيز مودع ته صرف د تاوان اختيار وو. کوم چې د مستودع په ذمه واجب وو. او هغه په برى کاوه سره ساقط شو. اود صاحبينو رحمهما الله په نيز برى کاوه سره صرف د تاوان اختيار ختم شو. نو په يوځائې کړې شوي مال کې شرکت کول متعين شو.

وَمِنْ هَذَا الْقَبِيلِ خَلْطُ الْحِنْطَةِ بِالشَّعِيرِ فِي الصَّحِيحِ او هم ددې قبيل څخه دې. غنم د اوربشو سره ملاوول په صحيح قول کې. لِأَنَّ أَحَدَهُمَا لَا يَخْلُو عَنْ حَبَّاتِ الْآخَرِ خکه چې په دې کې يو د بل د دانو نه خالي نه وي. فَتَتَعَذَّرُ التَّمْيِيزُ وَالْقِسْمَةُ نو جدا کول او تقسيمول متعذر شو.

تشريح: يعنې غنم د اوربشو سره ملاوول هم په صحيح قول کې ددې قبيل څخه دي. چه بالاتفاق د مالك حق منقطع کيږي. او تاوان واجبيږي. خکه چې غنمو او اوربشو کې هر يو کې د يو بل دانې ملاوْ شوي دي. نو عين

وديعت په حقيقت کي جلا کول متعذر دی.او حکما يعنی په ذريعه د ويش هم جلا کول متعذر دی.خکه چي د غير جنس کيدلو په وجه ويش نشی کيدلي.خکه چي دا غيرمشروع دي.نو ضرور به تاوان متعين کيږی.نود خپل وديعت په مثل به تاوان اخلی.

وَلَوْ خَلَطَ الْمَائِعَ بِجِنْسِهِ كه نرم (بهيدونكي) شئ ددي په جنس کي ملاؤ کړي شو. فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ يَنْقَطِعُ حَقُّ الْمَالِكِ إِلَى ضَمَانٍ لِمَا ذَكَرْنَا،نود امام مالك رحمه الله په نيز د مالك حق منقطع کيږی.ضمان طرف ته،په هغه وجه کوم چي مونږ ذکر کړله. وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَجْعَلُ الْأَقَلَّ تَابِعًا لِلْأَكْثَرِ اعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ أَجْزَاءً،اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به اقل د اکثر تابع کولي شی.د غالب اجزاؤ اعتبار کولو په وجه، وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ شَرِكَهُ بِكُلِّ حَالٍ،اود امام محمد رحمه الله په نيز به هرحال کي د مودع شريك کيږی. لِأَنَّ الْجِنْسَ لَا يَغْلِبُ الْجِنْسَ عِنْدَهُ خکه چي ددوی په نيز يو جنس پخپل جنس باندي نه غالب کيږی. عَلَى مَا مَرَّ فِي الرَّضَاعِ،لکه څنګه چي کتاب الرضاع کي تير شو. وَنَظِيرُهُ خَلْطُ الدَّرَاهِمِ بِمِثْلِهَا إِذَابَةً او ددي مثال دراهم ددي مثل سره ملاوول دی.په ايلی کولو سره، لِأَنَّهُ يَصِيرُ مَائِعًا بِالْإِذَابَةِ خکه چي ايلی کولو سره هغه هم نرميږی.

**تشريح:** که نرم او بهيدونکي شئ ددي په جنس کي ملاؤ کړي شو.مثلاً د زيتون تيل وديعت وو.دا ئي د زيتون په تيلو کي ملاؤ کړل.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مالك حق منقطع شو.او تاوان واجب شو.خکه چي دا هرلحاظ سره استهلاك دي.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د اجزاؤ په اعتبار سره دغالب اعتبار کولي شی.او اقل به د اکثر تابع شمارلي کيږی.اود امام محمد رحمه الله په نيز به مودع په هرحال کي د مستودع شريك وی.خکه چي ددوی په نيز اصول هم دادی.چه يو جنس پخپله پخل جنس باندي غالب نشی راتلي.لکه په کتاب الرضاع کي تير شو.که د دوي (دوه) ښځو شيدي ملاؤ کړي شو.او يو بچی ته ورکړي شو.نو رضاعت د دواړو نه ثابتيږی.او ددي اعتبار نه کيږی.چه د کومي ښځي شيدي غالب وی.هم د هغي ځخه به رضاعت ثابتيږی.خکه چي دواړه شيدي يو جنس دي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائی.ددي مثال دادي.که د وديعت دراهم خپلو دراهمو سره ايلی کړل.نو په دي کي هم دا مذکوره اختلاف دي.خکه چي ايلی کاوه سره دراهم هم نرم او بهيدونکي شئ شو.

### د مودع په مال کښي د وديعت پخپله بغير دده د حرکته د ملاويدلو مسئله

قَالَ (وَإِنِ اخْتَلَطَتْ بِمَالِهِ مِنْ غَيْرِ فِعْلِهِ که وديعت د مودع په مال کي ملاؤ شو.دده د څه حرکت کاوه نه بغير، فَهُوَ شَرِيكٌ لِصَاحِبِهَا) نو دي به د وديعت ايخودونکی انډيوال وی. كَمَا إِذَا انْشَقَّ الْكِيسَانِ لکه څنګه چي دواړه تهيلئ اوشليږی. فَاخْتَلَطَا او دراهم ملاؤ شی. لِأَنَّهُ لَا يَضْمَنُهَا لِعَدَمِ الصُّنْعِ مِنْهُ خکه چي هغه به ضامن نه وی.د څه حرکت نه کيدلو په وجه، فَيَشْتَرِكَانِ نو دواړه به شريك کيږی. وَهَذَا بِالِاتِّفَاقِ. اودا بالاتفاق دی. قَالَ (فَإِنْ أَنْفَقَ الْمُودَعُ بَعْضَهَا مودع په وديعت باندي څه خرج اوکړو. ثُمَّ رَدَّ مِثْلَهُ که د هغي مثل ئي واخستلو. فَخَلَطَهُ بِالْبَاقِي و پاته کي ئي ملاؤ کړو. ضَمِنَ الْجَمِيعَ) نو د پوره به ضامن وی. لِأَنَّهُ خَلَطَ مَالَ غَيْرِهِ بِمَالِهِ خکه چي ده د بل مال خپل مال کي ملاؤ کړو. فَيَكُونُ اسْتِهْلَاكًا عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي تَقَدَّمَ. نودا استهلاك شو.په هغه تفصيل کوم چي وړاندي تير شو.

**تشريح:** د ترجمي نه مطلب ښکاره دي

قَالَ (وَإِذَا تَعَدَّى الْمُودَعُ فِي الْوَدِيعَةِ کله چي مودع په وديعت کي تعدی (خپل څه حرکت) اوکړو. بِأَنْ كَانَتْ دَابَّةً په دي طريقه چي هغه حيوان (څاروي) وو. فَرَكِبَهَا په هغي سور شو. أَوْ ثَوْبًا فَلَبِسَهُ يا کپړه وه.هغه ئي واغوستله. أَوْ عَبْدًا فَاسْتَخْدَمَهُ يا غلام وو.د هغه نه ئي خدمت واخستلو. أَوْ أَوْدَعَهَا غَيْرَهُ يا ئي دا د بل چا سره وديعت کيخودلو. ثُمَّ أَزَالَ التَّعَدِّيَ بيا ئي تعدی (خپل تصرف) لري کړو. فَرَدَّهَا إِلَى يَدِهِ او واپس خلی.خپل ځان



سره کيږدی. زَالَ الضَّمَانُ) نو ضمان ساقط شو. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعی رحمه الله فرمائی. لَا يَبْرَأُ عَنِ الضَّمَانِ د تاوان څخه به نه بری کيږی. لِأَنَّ عَقْدَ الْوَدِيعَةِ ارْتَفَعَ خکه چي عقد د وديعت هغه وخت لري شوي وو. حِينَ صَارَ ضَامِنًا لِلْمُنَافَاةِ کله چي دي ضامن شوي وو.د منافات په وجه. فَلَا يَبْرَأُ إِلَّا بِالرَّدِّ عَلَى الْمَالِكِ نو دي به نه بری کيږی.خو مالك ته په واپس کاوه سره. وَلَنَا مونږ دليل دادي. أَنَّ الْأَمْرَ بَاقٍ لِإِطْلَاقِهِ، چي حکم د وديعت اوس هم پاته دي.د امر د اطلاق په وجه. وَارْتِفَاعُ حُكْمِ الْعَقْدِ ضَرُورَةُ ثُبُوتِ نَقِيضِهِ،او د عقد حکم اوچتيدل، ددي د نقيض ثابتيدلو د ارتيا په وجه وو. فَإِذَا ارْتَفَعَ هرکله چي نقيض لري شو. عَادَ حُكْمُ الْعَقْدِ،نود عقد حکم واپس راغی. كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَهُ لِلْحِفْظِ شَهْرًا لکه مثلاً يوکس يو مياشت پوري ساتنه لپاره نوکرئ باندي واخلی. فَتَرَكَ الْحِفْظَ فِي بَعْضِهِ او هغه يو څو ورځي ساتنه پريښولو. ثُمَّ حَفِظَ فِي الْبَاقِي بيا ئي پاته ورځي ساتنه اوکړو. فَحَصَلَ الرَّدُّ إِلَى نَائِبِ الْمَالِكِ نو واپس کول د مالك نائب ته حاصل شو.

**تشريح:** که مودع په وديعت کي څه قسمه تصرف اوکړو.مثلاً وديعت کپړه وه.نودا ئي واغوستله.يا حيوان (څاروي) وو.په هغي سور شو.يا غلام وو.د هغه نه ئي خدمت واخستلو.ددي نه روسته ده تعدی ختمه کړله.نو ضمان به هم ختميږی.د امام شافعی رحمه الله په نيز د ضمان نه نه بری کيږی.خکه چي هرکله مودع د تعدي (او تصرف) په وجه ضامن شو.نو عقد وديعت مرتفع شو.خکه چي ضمان او امانت کي منافات دي.نو ترکومه پوري چي مالك ته واپس نکړی.نه بری کيږی.مونږ وايو.چه امر بالحفظ يعنی ايداع اوس هم پاته ده.خکه چي د مودع قول،، احفظ هذا المال،،مطلق دي.چه دا ټولو وختونو ته شامل دي.پاتي شو ارتفاع د حکم يعنی عدم ضمان نودا په دي وجه وو.چه ددي نقيض ثابت وو.او هرکله چي نقيض مرتفع شو.نو حکم د عقد بيا راواپس شو.

### د مالك په وديعت طلب کولو د مودع د انکار حکم

قَالَ (فَإِنْ طَلَبَهَا صَاحِبُهَا که مالك وديعت طلب کړو. فَجَحَدَهَا او مودع ددي نه منکر شو. ضَمِنَهَا) نو ضامن به وی. لِأَنَّهُ لَمَّا طَالَبَهُ بِالرَّدِّ خکه چي هرکله هغه د واپسئ مطالبه اوکړله. فَقَدْ عَزَلَهُ عَنِ الْحِفْظِ نو هغه ئي د حفاظت کولو نه معزول کړو. فَبَعْدَ ذَلِكَ هُوَ بِالْإِمْسَاكِ غَاصِبٌ مَانِعٌ نو ددي نه روسته به دي په منع کولو کي غاصب وی. فَيَضْمَنُهَا،نو ضامن به وی.

**تشريح:** که مالك خپل وديعت طلب کړو.او مودع انکار اوکړو.او وې وئيل چه ما سره هيڅ وديعت نشته.نو مستودع به ددي ضامن وی.ترڅو که ددي نه روسته ضائع شی.نو ده له به د وديعت تاوان ورکول ضروری وی.خکه چي کله مالك دده نه د وديعت واپس کولو مطالبه اوکړله.نوده د امانت د حفاظت نه مودع معزول کړو.نو ددي نه روسته دي د وديعت ځان سره ساتلو کي غاصب او منع کونکي شو.نو ضامن به وی.

فَإِنْ عَادَ إِلَى الِاعْتِرَافِ بيا که ده اقرار هم اوکړو.د عقد د ارتفاع په وجه. لَمْ يَبْرَأْ عَنِ الضَّمَانِ نو د تاوان څخه به نه بری کيږی. لِارْتِفَاعِ الْعَقْدِ، إِذِ الْمُطَالَبَةُ بِالرَّدِّ رَفْعٌ مِنْ جِهَتِهِ خکه چي د واپسئ مطالبه کول دده د اړخه عقد اوچتول دی. وَالْجُحُودُ فَسْخٌ مِنْ جِهَةِ الْمُودَعِ اود مودع د اړخه هم انکار کول فسخ ده. كَجُحُودِ الْوَكِيلِ الْوَكَالَةَ لکه د وکيل د وکالت نه، وَجُحُودِ أَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ الْبَيْعَ اود احد المتعاقدين د بيع نه انکار کول. فَتَمَّ الرَّفْعُ،نو رفع (پورته کيدل) د عقد پوره شو. أَوْ لِأَنَّ الْمُودَعَ يَنْفَرِدُ بِعَزْلِ نَفْسِهِ بِمَحْضَرٍ مِنَ الْمُسْتَوْدِعِ يا په دي وجه چي مودع د خپل ځان معزول کولو مالك وی.د مستودع په موجودګئ کي. كَالْوَكِيلِ يَمْلِكُ عَزْلَ نَفْسِهِ بِحَضْرَةِ الْمُوَكِّلِ،لکه څنګه چي وکيل د خپل ځان معزول کولو مالك وی.د مؤکل په موجودګئ کي. وَإِذَا ارْتَفَعَ او هرکله چي عقد ختم شو. لَا يَعُودُ إِلَّا بِالتَّجْدِيدِ نو نه په واپس کيږی.مګر په تجديد (دوباره عقد) سره. فَلَمْ يُوجَدِ الرَّدُّ إِلَى نَائِبِ الْمَالِكِ،نود مالك نائب طرف ته واپسی اونه موندي شوه.

**تشریح:** که مودع په اول کې د ایداع انکار اوکړو او مالك ته ئې صفا اووئیل چه تا ما سره ودیعت نه دي ایښودي بیا ئې د ودیعت اقرار اوکړو نو په دې صورت کې به مودع نه بری کیږي بلکه تاوان به لازم وي ترکومه ئې چې مالك ته اونه سپاري ① یو خو په دې وجه چې عقد د ودیعت ختم شو. ځکه چې د مالك د ارخه د واپسئ مطالبه کول، عقد د ودیعت اوچتول دي اود مستودع انکار کول دده د ارخه هم فسخ د عقد ده لکه د وکیل د وکالت نه انکار کول فسخ د وکالت ده اود بائع او مشتري د بیع نه انکار کول فسخ د بیع وي نود دواړو طرفونو نه د عقد ودیعت اوچتول پوره شو ② دوهم ځکه چې ودیعت کې مستودع ته ددې خپل اختیار وي چه هغه د مودع په موجودګئ کې اود هغه په خبرېدلو کې کله هم اوغواړي خپل ځان معزول کړي لکه چې وکیل نه د موکل په موجودګئ کې د خپل ځان معزول کاوه اختیار وي اوکله چې عقد ودیعت ختم شو نو هغه به د تجدید نه بغیر نه واپس کیږي بیا که ده د ودیعت اقرار اوکړو بیا به هم هغه امین وي ځکه چې نائب مالك ته واپس کول اونه موندې شو ځکه چې د ودیعت فسخ کاوه نه روسته هغه نائب پاتې نشو.

**بِخِلَافِ الْخِلَافِ** په خلاف د خلاف ورزئ کولو، **ثُمَّ الْعَوْدِ إِلَى الْوِفَاقِ**، او بیا د موافقت (او اقرار) کولو، **وَلَوْ جَحَدَهَا عِنْدَ غَيْرِ صَاحِبِهَا** او که د مالك نه د علاوه په مخکې ئې انکار اوکړو. **لَا يَضْمَنُهَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ** نو ضامن به نه وي د امام ابویوسف رحمه الله په نیز، **خِلَافًا لِزُفَرَ** په خلاف د امام زفر رحمه الله، **لِأَنَّ الْجُحُودَ عِنْدَ غَيْرِهِ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ** ځکه چې د غیر مالك په وړاندې انکار کول د باب د حفاظت څخه دی. **لِأَنَّ فِيهِ قَطْعَ طَمَعِ الطَّامِعِينَ**، ځکه چې دې کې د طمع لرونکو خلقو خواهش منقطع کول دی. **وَلِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ عَزْلَ نَفْسِهِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنْهُ أَوْ طَلَبِهِ** او ځکه چې د مالك په موجودګئ کې یا دده د طلب نه بغیر مستودع خپل ځان نشي معزول کولې. **فَيَبْقَى الْأَمْرُ** نو امر پاته پاتې شو. **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ بِحَضْرَتِهِ** په خلاف ددې کله چې انکار د مالك په موجودګئ کې وي.

**تشریح:** وړاندې دا مسئله تېره شوې ده. که مستودع د ساتنه خلاف څه تصرف کاوه نه روسته مخالفت پرېږدي او موافقت اړخ ته راشي. نو پخپل حال د مخکې پشان امین او مستودع پاتې کیږي. او دلته مسئله داده. که مستودع د ودیعت نه د انکار کاوه نه روسته اقرار اوکړي. نو دې مستودع نه جوړیږي. وجه د توپیر داده. چه د مخالفت په صورت کې عقد د ودیعت نه ماتیږي. نود مودع د طرفه، او نه د مستودع د طرفه. بلکه مستودع د مودع نائب وي. اود انکار په صورت کې مودع او مستودع دواړو د اړخه عقد ختمیږي. چه ددې تشریح پورته تېره شوه. په دې وجه د مخالفت نه روسته د موافقت په صورت کې مستودع پاتې کیږي. او د انکار نه روسته د اقرار په صورت کې مستودع نه پاتې کیږي.

دا ددې اصل وجه داده. چه په خلاف کاوه سره د مودع د امر رد (تکراوول) نه کیږي. ځکه چې امر یو قول دې. چه ددې رد ددې د مثل قول سره کیږي. حالانکه خلاف کول قول نه دې. بلکه فعل دې. په خلاف د انکار کولو چې دا قول دې. اود امر کونکې امر ردکول دی. ځکه چې انکار کونکې خپل ځان ته د عین شئ مالك واني. اودا ښکاره ده. چه مالك پخپل ملك کې د غیر د اړخه د ساتنه مامور نه وي. ددې اصل دلیل اوامر شرعیه دی. چې که څوك سړې د الله تعالی د امر انکار اوکړي. نو هغه مرتد، کافر کیږي. اوکه د یو حکم خلاف ورزي اوکړي. مثلاً لمونځ اونکړي. نو نه کافر کیږي.

**فائده:** د ودیعت نه د انکار نه روسته اقرار کاوه سره د تاوان وجوب په یو څو شرطونو سره مشروط دی. ① د ودیعت نه انکار د مالك د مطالبې نه روسته وي. نو که مالك د مودع نه د ودیعت د حال پوښتنه اوکړو. چه هغه څنګه دې؟ او مودع د ودیعت انکار اوکړو. بیا هغه ضائع شو. نو تاوان به نه وي. ② مودع د انکار په زمانه کې ودیعت ددې ځائې هم منتقل کړو. که منتقل ئې نکړو او هلاك شو. نو تاوان به نه وي. ③ د انکار په وخت څوك داسې سړې موجود نه وي. چه د هغه نه د ودیعت هلاکاوه خطره وي. که څوك داسې سړې موجود وي. نود ودیعت په انکار به تاوان نه لازمیږي. ځکه چې د داسې سړي په وړاندې انکار کول، په ساتنه



او نګرانئ کې داخل دی. ④ د انکار نه روسته ئې ودیعت نه وي حاضر کړې. که ده ودیعت داسې حاضر کړو چه مالك د هغې په اخستلو باندې قادر وو. بیا مالك هغه ته اووئیل. چه نه ځان سره ودیعت اوساته. نو مودع باندې به تاوان پاته نه وي. ځکه چې دا ایداع جدید ده. ⑤ د ودیعت انکار د مالك په وړاندې وي. که د بل چا په وړاندې ئې انکار اوکړو. نو تاوان به نه وي. ځکه چې انکار په ساتنه د ودیعت کې داخل دې.

**مودع ودیعت په سفر کښې اوړلې شي او که نه؟**

**قَالَ: وَلِلْمُودَعِ أَنْ يُسَافِرَ بِالْوَدِيعَةِ** مودع لپاره جائز دی. ودیعت په سفر کې اوړل. **وَإِنْ كَانَ لَهَا حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** ① اګرچه په دې کې د بار اوړلو خرچه او مشقت وي. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. **وَقَالَا:** صاحبین رحمهما الله فرمائي. **لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ** چې هغه ته ددې اجازت نشته **إِذَا كَانَ لَهَا حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ** کله چې په دې کې د بار اوړلو خرچه او مشقت وي. **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ:** امام شافعي رحمه الله فرمائي. **لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ فِي الْوَجْهَيْنِ**، چې ده ته په دواړو صورتونو کې اختیار نشته. **لِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِطْلَاقُ الْأَمْرِ**، د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل د امر مطلق کېدل دی. **وَالْمَفَازَةُ مَحَلٌّ لِلْحِفْظِ** او ډګر هم د حفاظت ځائې وي. **إِذَا كَانَ الطَّرِيقُ آمِنًا** او لاره هم په امن وي. **وَلِهَذَا يَمْلِكُ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ فِي مَالِ الصَّبِيِّ**. په دې وجه د صغیر په مال کې پلار او وصي ددې مالك وي. **وَلَهُمَا** صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دی. **أَنَّهُ تَلْزَمُهُ مُؤْنَةُ الرَّدِّ** چې د مالك په ذمه به د واپسئ خرچه لازم وي. **فِيمَا لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ**، کله چې ودیعت داسې شئ وي. کله چې په دې کې د بار اوړلو خرچه او مشقت وي. **وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ لَا يَرْضَى بِهِ** او ښکاره هم داده. چه مالك به په دې سره نه راضي کیږي. **فَيَتَقَيَّدُ**، نو مطلق به ددې سره مقید کولې شي. **وَالشَّافِعِيُّ يُقَيِّدُهُ بِالْحِفْظِ الْمُتَعَارَفِ** او امام شافعي رحمه الله دا ددې متعارف حفظ سره مقید کوي. **وَهُوَ الْحِفْظُ فِي الْأَمْصَارِ** او هغه په ښارونو کې حفاظت کول دی. **وَصَارَ كَالِاسْتِحْفَاظِ بِأَجْرٍ**. اودا په اجرت باندې د حفاظت کولو پشان دي.

**تشریح:** مودع لپاره ودیعت په سفر کې اوړل جائز دی. اګرچه ددې په اوچتولو کې د څاروی یا د اوچتونکې د اجرت ضرورت وي. په دې شرط چې مالك نه وي منع کړې. اود ودیعت ضائع کېدلو خطره نه وي. د صاحبینو رحمهما الله په نیز که د بار اوړلو او د خرچې کولو حاجت وي. نو په سفر کې اوړل جائز نه دی. د امام شافعي رحمه الله په نیز دواړو صورتونو کې اوړل جائز نه دی. ځکه چې ددوی په نیز د ودیعت حفاظت په متعارف (د عام رواج مطابق) حفاظت باندې محمول دې. «و هو الحفظ في الأمصار» صاحبین رحمهما الله فرمائي. چه په فرض کړې شوی صورت کې په ده باندې د بار اوړلو اجرت لازم دې. او ښکاره هم داده. چه مودع به په دې سره نه راضي کیږي. امام صاحب رحمه الله دا فرمائي. چه د مودع د اړخه د ودیعت د حفاظت امر کول مطلق دی. نو لکه څنګه چې دا زماني سره مقید نه دې. هم دغه شان به یو خاص ځائې سره هم مقید نه وي.

**قُلْنَا: مُؤْنَةُ الرَّدِّ تَلْزَمُهُ فِي مِلْكِهِ ضَرُورَةَ امْتِثَالِ أَمْرِهِ** مونږ وایو. چه د واپسئ خرچه به دده په ملك کې دده د حکم ضرورت سره لازمیږي. **فَلَا يُبَالِي بِهِ** نو ددې به هیڅ پرواه نشي کولې.

**تشریح:** د صاحبینو رحمهما الله د قول د «یلزمه مؤونة» ځواب دې. چه دا خرچه دده په ملکیت کې په دې اړتیا سره لازم شوه. چه دده د ساتنه د حکم تعمیل اوشي. نو ددې خرچې راوستلو به هیڅ پرواه نشي کولې.

**وَالْمُعْتَادُ كَوْنُهُمْ فِي الْمِصْرِ** او معتاد (عام دستور) پخپله ددوی په ښار کې موجود کېدل دی. **لَا حِفْظُهُمْ**، ددې حفاظت کول نه دی. **وَمَنْ يَكُونُ فِي الْمَفَازَةِ** او کوم سړې چې په ځنګل کې وي. **يَحْفَظُ مَالَهُ فِيهَا**، هغه د خپل مال حفاظت په

[1] القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا فى ملتقى الأبحر (۴۶۹\۳) وردالمحتار (۵۵۶\۴) وخلاصة الفتاوى (۲۸۵\۴) والهندية (۳۴۲\۴) نقلاً عن القول الراجح (۲۱۵\۲)

خنګل کي کوی. بِخِلَافِ الْاِسْتِحْفَاظِ بِاَجْرٍ په خلاف په اجرت باندي د حفاظت کولو، لِاَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ ځکه چي دا عقد معاوضه ده. فَيَقْتَضِي التَّسْلِيْمَ فِيْ مَكَانِ الْعَقْدِ نو د عقد په ځاي کي د سپارلو تقاضا کوی. (وَاِذَا نَهَاهُ الْمُوْدِعُ اَنْ يُخْرِجَ الْوَدِيْعَةَ) که مودع دې بهر ته د وديعت اوړلو نه منع کړو. فَخَرَجَ بِهَا او هغه بهر ته يوړلو. (ضَمِنَ) نو ضامن به وی. لِاَنَّ التَّقْيِيْدَ مُفِيْدٌ ځکه چي دا قيد لګول ګټور دی. اِذِ الْحِفْظُ فِي الْمِصْرِ اَبْلَغُ ځکه چي ښار کي پوره حفاظت کيږي. فَكَانَ صَحِيْحًا نو قيد لګول صحيح شو.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله د دليل ځواب دی. چه امر معتاد صرف هم دادي. چه مودع او مودع پخپله ښار کي وي. پاتي شو حفاظت، نو دا په ښار کي معتاد نه دي. بلکه کوم سړي چي په ځنګل کي وي. هغه د خپل مال ساتنه په ځنګل کي هم کوی. په خلاف په اجرت باندي د ساتنه کولو، چه دا د ،،ما نحن فيه،، (زير بحث مسئلې) ځني نه ده. بلکه عقد معاوضه ده. نو کوم ځاي چي عقد شوي دي. هم هلته د سپارلو تقاضا کوی.

## د دوی (دوه) سړو د مشترک امانت بيان

قَالَ (وَاِذَا اَوْدَعَ رَجُلَانِ عِنْدَ رَجُلٍ وَدِيْعَةً) که دوې (دوه) سړو د يو کس سره وديعت کيښودلو. فَحَضَرَ اَحَدُهُمَا بيا په دوی کي يو کس راغی. وَطَلَبَ نَصِيْبَهُ مِنْهَا او خپله برخه ئې اوغوښتله. لَمْ يَدْفَعْ اِلَيْهِ نو مودع به هغه ته خپله برخه نه ورکوی. حَتّٰى يَحْضُرَ الْاٰخَرُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ (١) ترڅو چي دوهم سړي را حاضر شی. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرماتي. يَدْفَعُ اِلَيْهِ نَصِيْبَهُ چي د هغه برخه به ورکوی.

**تشريح:** دوې (دوه) سړو څه شي د مودع سره وديعت کيښودلو. بيا يو سړي راغی. او د خپلي برخي (حصې) کولو مطالبه ئې اوکړله. نو که دا شي د ذوات القيم (د قيمت والا) ځني وی. نو مودع لپاره دده برخه ورکول بالاجماع جائز نه ده. تر هغه وخته پورې چي دوهم سړي حاضر نشي. او که دا شي کيلي وی. نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دی. دامام صاحب رحمه الله په نيز جائز نه دی.

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: په جامع صغير کي دی. ثَلَاثَةٌ اسْتَوْدَعُوْا رَجُلًا اَلْفًا چي دريو سړو د يو کس سره زر درهم امانت کيښودلو. فَغَابَ اثْنَانِ بيا دوې (دوه) غائب شو. فَلَيْسَ لِلْحَاضِرِ اَنْ يَأْخُذَ نَصِيْبَهُ عِنْدَهُ نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز حاضر ته د خپلي برخي (حصې) اخستلو اختيار نشته. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرماتي. لَهُ ذٰلِكَ، چي ده ته دا اختيار شته. وَالْخِلَافُ فِي الْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ، او اختلاف په مکيل او موزون کي دي. وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْمَذْكُوْرِ فِي الْمُخْتَصَرِ، او په مختصر القدوری کي هم دا مراد دی.

**تشريح:** د جامع صغير عبارت د دريو فائدو په لحاظ سره ذکر کوی. ① اول د موضع خلاف تعين، چه اختلاف په مکيل او موزون کي دي. ددې په غير کي نه دي. ځکه چي جامع صغير کي لفظ د الف ذکر دي. چه دا موزون دي. په خلاف د قدوری د عبارت چي په هغې کي لفظ د ،،وديعة،، دي. ② دوهم دا چي د قدوری په عبارت کي د ،،اثنين،، صراحت دي. او په جامع صغير کي لفظ د ،،ثلاثة،، دي. اوس د قدوری په عبارت باندي څوک دا ونيلی شی. چه په دريو کي کوم کس حاضر وی. د هغه برخه د غائبينو د برخې (حصې) نه اقل ده. نو دا به د اکثر تابع کولی شی. ځکه چي هغه د مودع نه نشی اخستلی. خو که په دوې (دوه) کي يو حاضر وی. نو دده برخه د برابر کيدلو په وجه تابع کولی نشی. نو ده ته د اخستلو اختيار پکار دی. د جامع صغير عبارت اوخودل. چه په دواړو صورتونو کي حکم برابر دي. يعني نشی اخستلی. ③ دا چي په کتاب الوديعة کي ذکر دی. چه «القاضی لا يامر المودع بالدفع» ددې نه دا وهم کيږي. چه هغه ديانتاً اخستي شی. د جامع صغير

---

(١) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في العناية (٧\٤٥٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢١٦)



«و قد ناقش في ذالك كله صاحب النتائج» سره ئې دا شبه زائل کړله. په «ليس له ان ياخذ» صاحبينو رحمهما الله دليل دادی. اَنَّهُ طَالَبَهُ بِدَفْعِ نَصِيْبِهِ چي ده صرف د خپلي برخې (حصې) ورکولو مطالبه کړې ده. فَيُؤْمَرُ بِالدَّفْعِ اِلَيْهِ نو مستودع ته به ددې د ورکولو حکم ورکولی شی. كَمَا فِي الدَّيْنِ الْمُشْتَرَكِ، لکه څنګه چي په دين مشترک کي کيږي. وَهٰذَا لِاَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِتَسْلِيْمِ مَا سَلَّمَ اِلَيْهِ او دا ځکه دی. چه ده کومه برخه سپارلې وه. صرف هم د هغې مطالبه کوی. وَهُوَ النِّصْفُ، او هغه نصف ده. وَهٰذَا كَانَ لَهُ اَنْ يَّاْخُذَهُ په دې وجه ده ته د خپلي برخي (حصې) اخستلو اختيار دي. فَكَذَا يُؤْمَرُ هُوَ بِالدَّفْعِ اِلَيْهِ. نو ځکه به مودع ته د ورکولو حکم کولی شی.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادی. چه ده کوم څه مودع ته سپارلی وو. يعني نصف برخه دې د هغې مطالبه کوی. نو ده ته ورکول پکار دی. لکه څنګه چي مشترک قرضه کي کيږي. مثلاً دوې (دوه) سړو خپل مشترک غلام خرڅ کړو. نو په دوی کي که يو سړي حاضر شی. نو مقروض نه د خپلي برخي (حصې) مطالبه کولی شی.

وَلِاَبِيْ حَنِيْفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی. اَنَّهُ طَالَبَهُ بِدَفْعِ نَصِيْبِ الْغَائِبِ چي ده د غائب د برخې (حصې) مطالبه کړې ده. لِاَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِالْمُفْرَزِ ځکه چي هغه د مقسوم او مميز (د جدا حصې) غوښتونکې دي. وَحَقُّهُ فِي الْمُشَاعِ، حالانکه دده حق غير مقسوم کي دي. وَالْمُفْرَزُ الْمُعَيَّنُ يَشْتَمِلُ عَلَى الْحَقَّيْنِ، او جدا شوې معين برخه به د دواړو حق ته شامله وی. وَلَا يَتَمَيَّزُ حَقُّهُ اِلَّا بِالْقِسْمَةِ، او د غوښتونکي حق د ويش نه بغير نه جدا کيږي. وَلَيْسَ لِلْمُوْدَعِ وِلَايَةُ الْقِسْمَةِ حالانکه مودع ته د ويش اختيار نشته. وَلِهٰذَا لَا يَقَعُ دَفْعُهُ قِسْمَةً بِالْاِجْمَاعِ، په دې وجه دده ورکول په اجماع سره ويش نه وی. بِخِلَافِ الدَّيْنِ الْمُشْتَرَكِ په خلاف د دين مشترک لِاَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِتَسْلِيْمِ حَقِّهِ، چه په دې کي قرضخواه د خپل حق ورکولو مطالبه کوی. لِاَنَّ الدُّيُوْنَ تُقْضٰى بِاَمْثَالِهَا. ځکه چي د قرضونو اداکول پخپله مثل سره کيږي. قَوْلُهُ لَهُ اَنْ يَّاْخُذَهُ. قُلْنَا: او د صاحبينو رحمهما الله د قول «له ان ياخذه» په ځواب کي موږ وايو. لَيْسَ مِنْ ضَرُوْرَتِهِ اَنْ يُجْبَرَ الْمُوْدَعُ عَلَى الدَّفْعِ چي په دې سره دا ضروری نه ده. چه مودع په ورکولو مجبوره کړې شي.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادی. چه دې خپله برخه نه غواړی. بلکه د غائب برخه هم غواړی. ځکه چي دې مفرز (غير ويش شوې) غواړی. حالانکه دده حق مشاع (خور او ګډ) دي. جدا نه دي. او دده برخه به هغه وخت جلا کيږي. کله چي ويش اوشي. او مودع ته د تقسيمولو اختيار نشته. په خلاف د مشترک قرضې. چه په دې کي قرضخواه د خپل حق ور کاوه مطالبه کوی. ځکه چي د پور اداکول بالمثل وی. يعني په قرضدار چي کومه قرضه ده. هغه بعينه نه ورکوی. بلکه د هغې مثل ورکوی. بيا مقاصه کيږي.

كَمَا اِذَا كَانَ لَهُ اَلْفُ دِرْهَمٍ وَدِيْعَةً عِنْدَ اِنْسَانٍ لکه د يو کس زر درهم چا سره وديعت وی. وَعَلَيْهِ اَلْفٌ لِغَيْرِهِ او مودع باندي د بل کس زر درهم راغلی وی. فَلِغَرِيْمِهِ اَنْ يَّاْخُذَهُ اِذَا ظَفِرَ بِهِ، نو دده قرضخواه ته اختيار دي. چه کوم ځاي قابو بيا مومی. خپل حق واخلی. وَلَيْسَ لِلْمُوْدَعِ اَنْ يَّدْفَعَهُ اِلَيْهِ خو مودع ته دا اختيار نشته. چه وديعت ده ته ورکړی.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول «ولهذا كان ان ياخذه» ځواب دی. او د ،،قوله،، ضمير مرجع د علامه عيني رحمه الله په قول ،،معهود فی الذهن،، قائل دی. «اي قول القائل نصرة لقولهما» خو په قول د صاحب نتائج غوره داده. چه مرجع خصم دی. «اي قول الخصم في هذه المسئلة و هو الأمان» بهرحال صاحبينو رحمهما الله چي کوم دا ونيلی دی. چه مودع چرته قابو بيا مومی خپل حق اخستي شی؟ ځواب ددې ځواب دادی. چه هغه اخلی. نو اخستي شی. خو په دې سره دا نه لازميږي. چه مودع باندي د ور کاوه جبر اوکړې شی. نو که د يو کس په يو سړي باندي زر درهم وديعت وی. او مودع باندي د بل کس زر درهم راځي. نو دده قر[ض]خواه ته اختيار دي. چه کوم ځاي دده مال اومومی. وادې خلی. خو مودع ته دا اختيار نشته. چي وديعت ده ته ورکړی. او دلته بحث په دې کي دي. چه مودع ته ورکول جائز دی. او که نه؟

**فائده:** په فوائد ظهيريه کي دی. چه دې مسئلې ته مسئلة حمامی وائی. ددې قصه داده. چه دوې (دوه) سړو د حمام مالک ته هميانې (بټوه) وديعت ورکړله. او حمام کي داخل شو. بيا په دوی کي يو بهر راؤ وتلو. او

همیانۍ نې واخستله او لاړلو. ددې نه روسته دوهم کس راغی، او د همیانۍ مطالبه ئې اوکړله. (دا کیدای شی ددوی دواړو سازش وو). د حمام مالك حیران پاتې شو چه اوس څه اوکړم. نو ده ته چا اووئیل چه ددې تدبیر (چل) امام ابوحنیفه رحمه الله خودلې شی. دې د هغه په خدمت کې حاضر شو او قصه ئې واوروله. امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمائیل ته هغه ته دا مه وایه چه ما همیانۍ ورکړې ده. بلکه داسې وایه چه ترکومه پورې ستا اندیوال رانشی همیانۍ زه نه درکوم. ده هم داسې اوکړل نو دغه کس مجبوراً د حمام مالك پرېښولو.

## د یوسړي دوې (دوه) کسانو سره د امانت ایخودلو مسئلې

قَالَ (وَإِنْ أَوْدَعَ رَجُلٌ عِنْدَ رَجُلَيْنِ شَيْئًا) که دوې (دوه) سړو د یوکس سره داسې شئ ودیعت کیخودلو. مِمَّا يُقْسَمُ کوم چې تقسیمیدلې شی. لَمْ يَجُزْ أَنْ يَدْفَعَهُ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ نو جائز نه دی. دا چې واړه شئ ورکړی په دوی کې یو کس بل ته. وَلَكِنَّهُمَا يَقْتَسِمَانِهِ بلکه دادې ویش کړی فَيَحْفَظُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفَهُ بیا دې هر یو ددې د نصف ساتنه اوکړی. وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُقْسَمُ او که داځیز داسې دې چه تقسیمیدلې نشی جَازَ أَنْ يَحْفَظَ أَحَدُهُمَا بِإِذْنِ الْآخَرِ نو په دوی کې یو د بل په اجازت سره ساتنه کولای شی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ.. او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی. وَكَذَلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَهُ فِي الْمُرْتَهِنَيْنِ او هم داسې حکم دې ددوی په نیز په دوې (دوه) ګانړه ایخودونکو وَالْوَكِيلَيْنِ بِالشِّرَاءِ، او د اخستلو په دوې (دوه) وکیلانو کې، إِذَا سَلَّمَ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ کله چې په دوی کې یو کس بل ته اوسپاری.

**تشریح:** قوله: یوکس دوې (دوه) سړو سره داسې شئ ودیعت کیخودلو. کوم چې د ویش قابل دې. یعنی په دې کې حسی ویش سره څه عیب نه راځی. لکه مکیلې او موزونی شیان (څیزونه). نو په دوی کې یو کس لپاره دا جائز نه دی. چه هغه پوره شئ د بل په حفاظت کې ورکړی. بلکه دوی دواړه دې دا ویش کړی. او د نصف نصف حفاظت دې اوکړی. البته که دا شئ د ویش قابل نه وی. لکه غلام، سوارلئ، یوه کپړه، تهال (کاسه) وغیره. نو په دې کې دا جائز دی. چه په دوی کې یوکس د دوهم په اجازت سره ددې حفاظت اوکړی. دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی. او د دوې (دوه) مرتهنینو (ګانړه ایخودونکی) او د اخستلو د دوې (دوه) وکیلانو حکم هم ددوی په نیز هم دغه دې. ﴿و كذا المستبضعين و الوصين و العدلين﴾ د رهن مثال لکه مثلاً زید د دوې (دوه) کسانو سره داسې شئ رهن کیخودلو. چه د ویش قابل وو. او په دوی کې یو کس هغه شئ بل ته اوسپارلو. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ددې برخې (حصې) ضامن وی. او که دا شئ ویش قابل نه وی. نو یو مرتهن د دوهم په اجازت سره ددې حفاظت کولې شی. د اخستلو د وکیل مثال لك مثلاً زید دوې (دوه) کسان د یو شئ اخستلو لپاره وکیل کړل. او دوی ته ئې داسې مال ثمن ورکړو. چه هغه د تقسیمیدلو قابل دې. او په دوی کې یو وکیل هغه واړه مال دوهم وکیل ته ورکړو. او د هغه نه دغه مال ضائع شو. نو ورکونکې به د نصف ضامن وی.

وَقَالَا: لِأَحَدِهِمَا صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه هر یو ته اختیار دې أَنْ يَحْفَظَ بِإِذْنِ الْآخَرِ چې د بل په اجازت سره حفاظت اوکړی. فِي الْوَجْهَيْنِ.. په دواړو صورتونو کې. هُمَا أَنَّهُ رَضِيَ بِأَمَانَتِهِمَا د دوی دلیل دادې چه مودع ددوی دواړو امانت سره راضی دې فَكَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يُسَلِّمَ إِلَى الْآخَرِ نو هر یو ته به اختیار وی. چه بل ته ئې اوسپاری وَلَا يَضْمَنُهُ او ضامن به نه وی. كَمَا فِيمَا لَا يُقْسَمُ.. لکه څنګه چې په غیر قابل قسمت شئ کې دی.

**تشریح:** صاحبین رحمهما الله فرمائی. چه ودیعت که د ویش قابل وی. او که نه وی. په دواړو صورتونو کې دوی کې هر یو مودع ته دا اختیار دې. چه د دوهم په اجازت سره ساتنه اوکړی. دلیل ښکاره دې. چه مودع د دواړو امانت سره راضی دې.

وَلَهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې أَنَّهُ رَضِيَ بِحِفْظِهِمَا چې هغه د دواړو په ساتنه سره راضی شوې دې وَلَمْ يَرْضَ په دې سره نه دې راضی شوې بِحِفْظِ أَحَدِهِمَا كُلِّهِ چې یو کس د پوره ودیعت ساتنه اوکړی لِأَنَّ الْفِعْلَ مَتَى



أُضِيفَ إِلَى مَا يَقْبَلُ الْوَصْفَ بِالتَّجَزِّي ځکه چې فعل کله داسې شئ اړخ ته مضاف وی. کوم چې د تکړې کاوه صفت قبلوی تَنَاوَلَ الْبَعْضَ دُونَ الْكُلِّ نو هغه جزء ته شاملیږی. کل ته نه شاملیږی. فَوَقَعَ التَّسْلِيمُ إِلَى الْآخَرِ مِنْ غَيْرِ رِضَا الْمَالِكِ نو بل ته سپارل د مالك د رضامندئ نه بغیر شو فَيَضْمَنُ الدَّافِعُ نو ورکونکې به ضامن وی وَلَا يَضْمَنُ الْقَابِضُ. او قابض به ضامن نه وی. لِأَنَّ مُودِعَ الْمُودَعِ عِنْدَهُ لَا يَضْمَنُ ځکه چې مودع المدع د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نه ضامن کیږی، وَهَذَا بِخِلَافِ مَا لَا يُقْسَمُ او دا د غیر قابل ویش خلاف دی لِأَنَّهُ لَمَّا أَوْدَعَهُمَا ځکه چې هرکله مودع دواړو سره ودیعت کیخودلو وَلَا يُمْكِنُهُمَا الِاجْتِمَاعُ عَلَيْهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ حالاکه په شپه ورځ کې هر وخت ددوی یو ځائې اوسیدل ممکن نه دی وَأَمْكَنَهُمَا الْمُهَايَأَةُ البته دا ممکن ده. چه دواړه په وار وار ساتنه اوکړی. كَانَ الْمَالِكُ رَاضِيًا بِدَفْعِ الْكُلِّ إِلَى أَحَدِهِمَا فِي بَعْضِ الْأَحْوَالِ. نو په بعض حالاتو کې واړه امانت دوهم ته ور کاوه باندې هغه راضی دې.

**تشریح:** د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې. چه مودع ددوی دواړو ساتنه کاوه سره راضی شوې دې. په دې امر نه دې راضی شوې. چه په دواړو کې هم یو سړې د پوره ودیعت ساتنه اوکړی. وجه داده. چه هرکله د ساتنه فعل داسې شئ اړخ ته مضاف وی. کوم چې د تجزی صفت قبلوی. نو هغه جزء ته شاملیږی. کل ته نه شاملیږی. نو خپله برخه بل ته سپارل، د مالك د رضامندئ نه بغیر شو. نو ورکونکې به ضامن وی. البته قابض به ضامن نه وی. ځکه چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مودع المودع نه ضامن کیږی. په خلاف د هغه ودیعت کوم چې ناقابل ویش وی. چه په دوی کې هر یو ته بل ته د سپارلو اجازت دې. ځکه چې هرکله مودع دا دواړو سره ودیعت ایخودې دې. او هغه پوهیږی. چه په شپه ورځ کې هروخت ددوی دواړو یوځائې اوسیدل ممکن نه دی. نو دا ددې خبرې دلیل دې. چه هغه ددوی په وار وار ساتنه کاوه باندې راضی دې.

## د صاحب ودیعت د قول خلاف ښځې ته په ودیعت ورکولو د ضمان مسئله

قَالَ (وَإِذَا قَالَ صَاحِبُ الْوَدِيعَةِ لِلْمُودَعِ کله چې صاحب ودیعت مودع ته اووئیل. لَا تُسَلِّمْهَا إِلَى زَوْجَتِكَ چې دا خپلې ښځې ته مه ورکوه. فَسَلَّمَهَا إِلَيْهَا هغه خپلې ښځې ته ورکړو. لَا يَضْمَنُ. نو ضامن به نه وی. وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: جامع صغیر کې دی. إِذَا نَهَاهُ أَنْ يَدْفَعَهَا إِلَى أَحَدٍ مِنْ عِيَالِهِ چې کله مودِع، مودَع (بفتح الدال) منع کړو. چه پخپل عیال کې ئې چاته مه ورکوه. فَدَفَعَهَا إِلَى مَنْ لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ بیا ده داسې سړی ته ورکړو. چه د هغې نه خلاصې نشته. لَا يَضْمَنُ) نو ضامن به نه وی. كَمَا إِذَا كَانَتِ الْوَدِيعَةُ دَابَّةً فَنَهَاهُ عَنِ الدَّفْعِ إِلَى غُلَامِهِ مثلاً ودیعت د سوارلئ کوم حیوان (څاروې) وو. هغه منع کړو. چه خپل غلام ته ئې مه ورکوه. وَكَمَا إِذَا كَانَتْ شَيْئًا یا هغه داسې شئ وو. يُحْفَظُ فِي يَدِ النِّسَاءِ فَنَهَاهُ عَنِ الدَّفْعِ إِلَى امْرَأَتِهِ چې د هغې ساتنه د ښځو په لاس کولې شی. او هغه منع کړو. چه خپلې ښځې ته ئې مه ورکوه. وَهُوَ مَحْمَلُ الْأَوَّلِ او د رومبی محمل هم دغه دې. لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ إِقَامَةُ الْعَمَلِ مَعَ مُرَاعَاةِ هَذَا الشَّرْطِ، ځکه چې ددې شرط رعایت ساتلو سره عمل قائمول ناممکن دی. وَإِنْ كَانَ مُفِيدًا اګرچه دا شرط مفید دې. فَيَلْغُو نو لغوه به وی. (وَإِنْ كَانَ لَهُ مِنْهُ بُدٌّ) او که ددې نه بغیر څه خلاصې وی. ضَمِنَ) نو ضامن به وی. لِأَنَّ الشَّرْطَ مُفِيدٌ ځکه چې شرط مفید دې. لِأَنَّ مِنَ الْعِيَالِ مَنْ لَا يُؤْتَمَنُ عَلَى الْمَالِ ځکه چې عیال کې بعض داسې وی. چه هغوی باندې د مال د امانت دارئ اعتماد نه کیږی. وَقَدْ أَمْكَنَ الْعَمَلُ بِهِ مَعَ مُرَاعَاةِ هَذَا الشَّرْطِ او حال داچه ددې شرط رعایت ساتلو سره عمل کول ممکن دی. فَاعْتُبِرَ نو ددې اعتبار به کولې شی.

**تشریح:** مودِع (بکسر الدال)، مودَع (بفتح الدال) منع کړو. چه ودیعت خپلې ښځې ته مه سپاره. مودَع ښځې ته اوسپارلو. نو هغه به ضامن وی. د قدوری دا عبارت مطلق دې. چه د سپارلو نه بغیر خلاصې وو. او که نه وو. ددې هیڅ تصریح نشته. او د جامع صغیر په عبارت کې ددې تصریح ده. ﴿فدفعها إلى من لا بد منه﴾ علامه

مرغیناني رحمه الله فرماني.چه د قدوري د عبارت محمل هم دغه دي.اوس مسئله دا شوه.که د مودَع باوجود مودَع ودیعت اوسپارلو.نو ددې به دوې (دوه) صورتونه وي. ① یو دا چې هغه ته د ودیعت سپارلو نه بغیر خلاصي نه وو. ② او دوهم دا چې د ودیعت سپارلو نه خلاصي وو.(یعنی د سپارلو هیڅ ضرورت نه وو).که هیڅ خلاصي نه وو.مثلاً ودیعت د سوارلئ یو حیوان (څاروې) وو.د هغې اړه کي مودع اوونیل چه خپل غلام ته ئي مه ورکوه.حالانکه د وندې او اوبه وغیره ورکولو لپاره غلام ته د ورکولو نه بغیر خلاصي نشته یا دا ودیعت څه داسې شئ دې.چه دهغې حفاظت په ښځو سره کولې شي.نو مودع ښځې ته د ورکولو نه منع کړو.نو په داسې صورت کي به مودع ضامن نه وي.ځکه چې د مودع د شرط لحاظ ساتلو سره د حفاظت عمل ناممکن دې.نو ذکر شوې شرط اګرچه دده په حق کي مفید وي.خو لغوه به وي.اوکه ودیعت داسې شئ وي چه ددې د ورکولو نه بغیر خلاصي وي.مثلاً د سپینو زرو ګتمه ده.چه دا خپل ځان سره ساتلې شي.نو په داسې صورت کي به خلاف ورزی کولو سره ضامن وي.ځکه چې دا شرط مفید هم دې.(ځکه چې د سړي بعض عیال (د کور خلق) د اعتماد قابل نه وي) او دده نګراني سره حفاظت کول ممکن هم دي.

(وَإِنْ قَالَ که مودع اوونیل. احْفَظْهَا فِي هَذَا الْبَيْتِ چې د ودیعت ساتنه په دې اطاق کي کوه. فَحَفِظَهَا فِي بَيْتٍ آخَرَ مِنَ الدَّارِ و هغه د کور په بله اطاق کي ساتنه اوکړو. لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وي. لِأَنَّ الشَّرْطَ غَيْرُ مُفِيدٍ، ځکه چې دا شرط غیر مفید دې. فَإِنَّ الْبَيْتَيْنِ فِي دَارٍ وَاحِدَةٍ لَا يَتَفَاوَتَانِ فِي الْحِرْزِ ځکه چې د یو کور دوې (دوه) کمرې په ساتنه ګاه کیدلو کي متفاوت (او مختلف) نه وي.

**تشریح:** اوکه صاحب ودیعت مودع ته اوونیل.چه ودیعت په دې اطاق کي کیږده.مودع ددې کور په بله کمرې کي کیخودلو.نو ضامن به نه وي.د استحسان په طور، د قیاس په طور ضامن کیدل پکار دي.ځکه چې کله دوې (دوه) کمرې هم د ساتنه په لحاظ سره متفاوت وي.مثلاً د یوې کمرې شا کوڅې اړخ ته ده.چه په دې کي غل آسانتیا سره غار کولې شي.اود بلې کمرې شا د کور په منځ کي ده.چه هغې کي دا خطره نشته.وجه د استحسان داده.چه لکه څنګه د مودع دا وئیل،چه د کمرې په دې کوټ کي ئې کیږده.یا په دې صندخ کي کیږده.د غیر مفید کیدلو په وجه معتبر نه دي.دغه ډول د کمرې په مسئله کي هم معتبر نه دي.

(وَإِنْ حَفِظَهَا فِي دَارٍ أُخْرَى اوکه په بل کور کي ئې ساتنه اوکړو. ضَمِنَ) نو ضامن به وي. لِأَنَّ الدَّارَيْنِ يَتَفَاوَتَانِ فِي الْحِرْزِ ځکه چې دغه کور په ساتنه ګاه کیدلو کي متفاوت دي. فَكَانَ مُفِيدًا نو شرط مفید شو. فَيَصِحُّ التَّقْيِيدُ نو ددې قید لګول به صحیح وي. وَلَوْ كَانَ التَّفَاوُتُ بَيْنَ الْبَيْتَيْنِ ظَاهِرًا او په دوې (دوه) کمرو کي ښکاره تفاوت وي. بِأَنْ كَانَتِ الدَّارُ الَّتِي فِيهَا الْبَيْتَانِ عَظِيمَةً په دې طریقه چې هغه کور چې هغې کي دوې (دوه) کمرې وي.چه غټې (لوئې) وي. وَالْبَيْتُ الَّذِي نَهَاهُ عَنِ الْحِفْظِ فِيهِ عَوْرَةٌ ظَاهِرَةٌ او په اطاق کي چې د ساتنه کاوه نه هغه منع کړې ده.هغې کي څه ښکاره خرابي وي. صَحَّ الشَّرْطُ بیا به هم شرط صحیح وي.

**تشریح:** اوکه مودع د بل کوره په اطاق کي ساتنه اوکړو.نو په ضائع کاوه سره به ضامن وي.ځکه چې د ساتنه په حق کي دوې (دوه) کورونه متفاوت وي.بعض کور زیات محفوظ وي.او بعض کم وي.البته که په تحفظ کي برابر وي.یا دوهم د رومبی نه هم زیات محفوظ وي.او بیا ضائع شي.نو مودع باندې به تاوان نه وي.اوکه د یو کور په دوې (دوه) کمرو کي ښکاره تفاوت وي.مثلاً په کوم کور کي چې دوې (دوه) کمرې دي.چه ډیرې غټې دي.او په کومه اطاق کي چې د ساتنه کاوه نه منع کړې ده.هغې کي څه خرابي او ښکاره خلل وي.نو شرط به مفید وي.او ددې خلاف کاوه په صورت کي به مودع ضامن وي.

## د مودع بل کس سره د ودیعت ایخودلو مسئله

۲۱٤ (وَمَنْ أَوْدَعَ رَجُلًا وَدِيعَةً یو سړي د یو کس سره ودیعت کیخودلو. فَأَوْدَعَهَا آخَرَ هغه د یو بل کس سره ودیعت



کیخودلو. فَهَلَكَتْ و هغه هلاك شو. فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْأَوَّلَ نو مالك د مودع اول نه تاوان اخستلې شي. وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الثَّانِيَ د مودع ثاني نه نشي اخستلې. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دي.

**تشریح:** یو سړي څه شئ د چا سره ودیعت کیخودلو.او هغه دا شئ د بل چا سره ودیعت کیخودلو.مثلاً زید د خالد سره ودیعت کیخودلو.او خالد د محمود سره کیخودلو.(حالانکه مالك ده ته دا اجازت نه وو ورکړې.او نه محمود دده د داسې عیال څخنې دې،چه ده له د ورکولو نه بغیر څه خلاصي نه وي) بیا مذکوره ودیعت محمود سره ضائع شو.نو مالك د ودیعت (زید) صرف د مودع اول (خالد) نه تاوان اخستلې شي.د مودع ثاني (محمود) نه نشي اخستلې.په یو روایت کي امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دي.

(وَقَالَا صاحبین رحمهما الله فرماني. لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ أَيَّهُمَا شَاءَ، چې هغه په دوی دواړو کي چې د کوم نه غواړي.تاوان اخستلې شي. فَإِنْ ضَمَّنَ الْآخَرَ رَجَعَ عَلَى الْأَوَّلِ) نو که د اول نه ئې تاوان واخستلو.نو هغه په دوهم باندې رجوع نشي کولې.او که د دوهم نه ئې واخستلو.نو هغه به اول اړخ ته رجوع کوي.

**د صاحبینو مسلک:** د صاحبینو رحمهما الله په نیز زید ته اختیار دې.که غواړي.د مودع یعنی خالد نه دې ضمان واخلي.اوکه غواړي.د مودع المودع نه یعنی د محمود نه دې واخلي.امام شافعي، امام مالك رحمهما الله او په دوهم روایت کي امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دي.اوس که ده د مودع اول (خالد) نه تاوان واخستلو.نو خالد دا تاوان د مودع المودع (محمود) نه نشي اخستلې.اوکه ده د مودع المودع (محمود) نه تاوان واخستلو.نودا تاوان به دې د مودع اول (خالد) نه اخلي.

لَهُمَا صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. أَنَّهُ قَبَضَ الْمَالَ مِنْ يَدِ ضَمِينٍ چې دوهم مال د ضمین د لاس نه اخستې دې. فَيُضَمِّنُهُ نو هغه به هم ضامن وي. كَمُودَعِ الْغَاصِبِ،لکه څنګه چې د غاصب مودع ضامن وي. وَهَذَا لِأَنَّ الْمَالِكَ لَمْ يَرْضَ بِأَمَانَةِ غَيْرِهِ،اودا ځکه دي.چه مالك د بل په امانت سره نه دې راضي شوې. فَيَكُونُ الْأَوَّلُ مُتَعَدِّيًا بِالتَّسْلِيمِ نو مودع اول په ور کاوه سره متعدي (زیاتی تصرف) کونکې شو. وَالثَّانِي بِالْقَبْضِ او مودع ثاني په قبضه کاوه سره. فَيُخَيَّرُ بَيْنَهُمَا،نو مالك ته به دواړو په منځ کي اختیار وي.

**تشریح:** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه مودع المودع په مال د ودیعت باندې د ضمین د لاسه قبضه کړې ده.نو لکه څنګه چې مودع الغاصب ضامن وي.دغه ډول به دې هم ضامن وي.مثلاً یو سړي څه شئ غصب کړو.اود یو کس سره ئې ودیعت کیخودلو .او هغه ضائع شو.نو مودع الغاصب به ضامن وي.اودا چې مودع اوونیل.چه ده د ضمین د لاسه قبضه کړې دې.دا ځکه زید د خالد نه علاوه د بل کس امانت دارئ سره راضي نه دې.نود خالد د اړخه تعدي (تصرف) دا شو.چه ده محمود سره ودیعت کیخودلو.اود محمود د اړخه تعدي دا شوه.چه هغه په دې باندې قبضه اوکړله.نو زید چې په دوی دواړو کي د چا نه غواړي.تاوان اخستې شي.

غَيْرَ أَنَّهُ إِنْ ضَمَّنَ الْأَوَّلَ صرف دومره خبره ده.که ده د اول نه تاوان واخستلو. لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الثَّانِي نو هغه په ثاني باندې رجوع نشي کولې. لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ ځکه چې مودع اول تاوان ور کاوه سره ددې مالك شو. فَظَهَرَ أَنَّهُ أَوْدَعَ مِلْكَ نَفْسِهِ،نودا خبره ښکاره شوه.چه ده خپل ذاتي ملك ودیعت ایخودې دې. وَإِنْ ضَمَّنَ الثَّانِيَ اوکه د ثاني نه ئې تاوان واخستلو. رَجَعَ عَلَى الْأَوَّلِ نو هغه به اول باندې رجوع کوي. لِأَنَّهُ عَامِلٌ لَهُ،ځکه چې ثاني اول لپاره

[1] القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی الخانية (٤\ت٣٤٦) والبدائع (٦\٢٠٨) وملتقی الأبحر (٣\٤٧٥) وكنز الدقائق (٣٠٥) والدرالمختار (٤\٥٥٧) ومجمع الأنهر (٣\٣٧٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٢١)

عامل دې. فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ بِمَا لَحِقَهُ مِنَ الْعُهْدَةِ.نو هغه ته چې کوم ضمان لاحق شوې دې.هغه به د اول نه اخلی.

**تشریح:** د صاحبینو رحمهما الله دلیل سره متعلق دې.یعنی صرف دومره خبره ده.که ده د مودع اول نه واخستلو.نو هغه د دوهم مودع نه واپس نشی اخستلې.خکه چې مودع اول د ضمان په اداکاوه سره ددې مالك شو.نو دا خبره ښکاره شوه.چه ده خپل ذاتی مال مودع سره امانت ایخودې دې.نو هغه د خپل مودع نه تاوان نشی اخستلې.اوکه د ودیعت مالك د دوهم مودع نه تاوان واخستلو.نو هغه به دمودع اول نه واپس اخلی. خکه چې دوهم مودع د مودع اول لپاره کار کوی.نو کوم ضمان چې په ده راغلې دې.هغه به د مودع اول نه اخلی.

وَلَهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. أَنَّهُ قَبَضَ الْمَالَ مِنْ يَدِ أَمِينٍ چې ثانی مال د امین د لاسه اخستې دې. لِأَنَّهُ بِالدَّفْعِ لَا يَضْمَنُ مَا لَمْ يُفَارِقْهُ لِحُضُورِ رَأْيِهِ.خکه چې اول صرف ور کاوه سره نه ضامن کیږی.ترکومه پورې چې د هغه نه جلا نشی.د هغه د رائې موجود کیدلو په وجه. فَلَا تَعَدِّيَ مِنْهُمَا نو دواړو کې د یوکس د اړخه تعدی نشته. فَإِذَا فَارَقَهُ البته هرکله چې هغه دده نه جلا شو. فَقَدْ تَرَكَ الْحِفْظَ الْمُلْتَزَمَ نو ده د التزام کړې شوی ساتنه پریښولو. فَيَضْمَنُهُ بِذَلِكَ نود هغې په وجه به ضامن وی. وَأَمَّا الثَّانِي پاتې شو مودع ثانی فَمُسْتَمِرٌّ عَلَى الْحَالَةِ الْأُولَى نو هغه برابر پخپل حالت باندې پاته دې. وَلَمْ يُوجَدْ مِنْهُ صُنْعٌ او دده د اړخه هیڅ حرکت اونه موندې شو. فَلَا يَضْمَنُهُ نو هغه به ضامن نه وی. كَالرِّيحِ إِذَا أَلْقَتْ فِي حِجْرِهِ ثَوْبَ غَيْرِهِ لکه هوا کپړه (اوچته کړی او) دچا په غیږه کې اوغورزوی.

**تشریح:** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه مودع المودع د ضمین د لاسه نه دې قبض کړې.بلکه د امین د لاسه ئې قبضه کړې دې.خکه چې مودع اول صرف د ودیعت حواله کاوه سره نه ضامن کیږی.ترکومه چې هغه دده نه جلا نشی.نود جلا کیدلو نه وړاندې نه د مودع د اړخه تعدی ده.اونه د مودع المودع د طرفه، البته کله چې دې جلا شی.نو هله به دده د اړخه تعدی موندلې کیږی.خکه چې د حفظ التزام پریښولو .نو مالك به دده نه د ساتنه پریښولو په سبب ضمان اخلی.په خلاف د مودع المودع، چې دده د اړخه موجب ضمان هیڅ فعل نه دې موجود شوې.نو هغه به ضامن نه وی.لکه هوا که د یو کس په غیږه کې د بل کس کپړه راوغورزوی.او هغه هلاکه شی.نو هغه نه ضامن کیږی.

## یوسړی سره د دوو کسانو د امانت ایخودلو بیان

قَالَ: (وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهِ أَلْفٌ د یو کس په قبضه کې زر درهم دی. فَادَّعَاهُ رَجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو په دوی (دوه) سړو کې هر یوکس دعوه اوکړله. أَنَّهَا لَهُ چې دا زما دی. أَوْدَعَهَا إِيَّاهُ ما دده سره امانت ایخودی وو. وَأَبَى أَنْ يَحْلِفَ لَهُمَا او قابض د دواړو لپاره د قسم خوړلو نه انکار اوکړو. فَالْأَلْفُ بَيْنَهُمَا نودا زر درهم به دواړو کې مشترك وی. وَعَلَيْهِ أَلْفٌ أُخْرَى بَيْنَهُمَا) او په قابض به زر (درهم) نور هم واجب وی.چه هغه به هم په دوی کې مشترك وی.

**تشریح:** صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی سره زر درهم دی.هغه باندې دوې (دوه) سړو دعوه اوکړله.او هر یو اوونیل.چه زر درهم زما دی.ما دده سره ودیعت ایخودی وو.نود صدق د احتمال په وجه د دوی دواړو دعوه صحیح ده.نو په حکم د حدیث «البینة علی المدعی و الیمین علی من انکره» به قابض باندې ددوی دواړو لپاره قسم عائد کیږی.خو قابض ددوی دواړو لپاره د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نودا زر درهم به ددوی دواړو مدعیانو گرخولې شی.او قابض باندې به زر درهم نور هم لازم وی.چه هغه به دوی دواړو مدعیانو په منځ کې نیم په نیمه وی.په دې صورت سره به هر مدعی لپاره زر درهم پوره شی.

وَقَوْلُهُ ذَلِكَ د دې تشریح داده. أَنَّ دَعْوَى كُلِّ وَاحِدٍ صَحِيحَةٌ چې د هر یو دعوه صحیح ده. لِاحْتِمَالِهَا الصِّدْقَ د صدق د



احتمال په وجه، فَيُسْتَحَقُّ الْحَلِفُ عَلَى الْمُنْكِرِ بِالْحَدِيثِ.نو هر مدعی د حدیث په رو سره منکر باندې د قسم مستحق دې.

**تشریح:** ددې تفصیلي تشریح حاصل دادې.چه قابض څخه به دواړو مدعیانو لپاره جلا جلا قسم اخستلې شي.خکه چې دوی دواړو مدعیانو کې د هر یو دعوه کې انفرادي طور باندې د صداقت احتمال دې.اوس دې څلور صورتونه دی.① رومبې صورت دادې.چه دواړو لپاره به قسم خوری.② یا به صرف د اول لپاره خوری.④ یا صرف د دریم دپاره.③ یا به د دواړو لپاره د قسم خوړلو نه انکار کوی.

نوکه قابض دواړو لپاره قسم اوخوری.نو دوی لپاره به هیڅ نه وی.خکه چې حجت اونه موندې شو.اوکه هغه د اول لپاره د قسم خوړلو نه روسته دوهم لپاره د قسم خوړلو نه انکار اوکړی.نود زر( درهمو) حکم به مدعی ثانی لپاره ورکولې شی.خکه چې حجت ( نکول اوانکار) اوموندې شو.اوکه قابض د مدعی اول لپاره د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو لا اوس به حکم نشی ورکولې.بلکه د دوهم مدعی لپاره به قسم اخستلې شی.ددې په خلاف که مدعی علیه ( قابض) دواړو مدعیانو کې د یو لپاره اقرار اوکړو.نو مقرله لپاره به حکم ورکولې شی.خکه اقرار یو داسې حجت دې.چه دا پخپله موجب ( واجبونکې) دې.نو اقرار سره به حکم ورکولې شی.پاتې شو د قسم نه انکار کول.نودا پخپله موجب نه دې.بلکه دا هغه وخت حجت وی.کله چې د قاضی په مجلس کې انکار اوکړی.نو د انکار په صورت کې به حکم اول کې تاخیر کول جائز وی.چه د دوهم مدعی لپاره قسم اوخوری.اود قضاء د حکم طریقه ښکاره شی.چه هغه د زر درهمو فیصله د اول مدعی لپاره اوکړی.یا دوی دواړو لپاره اوکړی.خکه که قابض د ثانی لپاره هم د قسم اوخوری.نو دده ( یعنی دویم) لپاره به هیڅ نه وی.بلکه پوره دوې (دوه) زره درهم به اول لپاره وی.اوکه هغه د ثانی لپاره هم د قسم خوړلو نه انکار کوی. نو زر درهم به دواړو کې مشترك وی. «فلذا یتوقف فی القضاء».اوکه قابض دوهم مدعی لپاره هم د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو زر درهم به دوی دواړو مدعیانو منځ کې نیم په نیمه کیدلو حکم ورکولې شی.( په کتاب کې هم دا صورت ذکر دې).خکه چې حجت کې دوی دواړه برابر دی.لکه که دا مدعیان گواهان قائم کړی. بیا هم دا حکم دې.

او په قابض به زر درهم نور هم واجب وی.او هغه به هم دواړو مدعیانو کې نیم په نیمه وی.خکه چې دده قسم نه خوړل، د دواړو دعوو اقرار شو.یعنی ده په طریقه د بذل ( په بهادرئ) ( د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز) یا په طریقه د اقرار( د صاحبینو رحمهما الله په نیز) پخپل خان باندې حق واجب کړو.او اقرار پخپله د مقر د ذات لپاره حجت وی.نود دواړو مدعیانو حق زر زر درهم شو.حالانکه ده صرف زر درهم ورکړی دی.نو هغه د هر یو نیم حق د بل لپاره د نیم حق په ذریعه ادا کونکې شو.نو دې به د دواړو د نیم نیم حق نورهم ضامن وی.دا حکم زموږ د عالمانو په نیز دې.فقیه ابوالليث رحمه الله په شرح جامع صغیر کې ونیلی دی.چه د ابن ابی لیلی رحمه الله دقول مطابق به په ذکرشوی قابض باندې صرف زر درهم واجب وی.

**قوله: دعوی کل واحد صحیحة** په کفایه، شرح تاج الشریعه، او نتائج الافکار کې دی.چه د صحت د دعوې نه مراد په طریقه د انفراد صحیح کیدل دی.په طریقه د اجتماع نه دی.نود علامه مرغینانی رحمه الله تعلیل «لاحتمالها الصدق» بغیر د تکلف نه تام دې.سعدی چلپی د صحت دعوه د اجتماع په طریقه صحیح کیدلو باندې محمول کړې ده.اود توجیه مقام کې ئې په دې خبره ډیر زور ورکړې دې.او ونیلی ئې دی.چه اجتماعی طور باندې ددوی دواړو دعوه صحیح ده.په دې طریقه چې یو مدعی یو کس ته زردرهم ودیعت ورکړل.مودع د بل کس نه سامان واخستلو.او دوې (دوه) زره درهم ئې د سامان په ثمن کې ورکړلې.او دوهم کس په دې باندې قبضه اوکړله.بیا دې دوهم کس هم دده سره ودیعت کیخودلو.خو په قول د صاحب د نتائج دا توجیه غلطه ده.خکه چې اصل مسئله کې چې کوم دا ذکردی.چه «فادعاها رجلان کل واحد منهما انها له أودعها» دا هم په دې دال دې.چه په دوی کې هر یو دعوه کړې ده.چه فی الحال د زر درهمو مالك هم دې دې.او هم ده ودیعت ایخودی دی.اودا ښکاره ده.چه د عین واحد په حالت واحده کې پوره طور باندې د دوې (دوه)

سرو ملك كيدل، دغه ډول ددوي (دوه) كسانو د اړخه مودع كيدل، غير متصور دى. او په مذكوره توجيه كي قابض سره دوى كي د يو كس زر درهم وديعت ايخودل، او دهغې مالك كيدل، د سامان اخستلو سره زائل شو. ﴿فكيف يحتمل أن يصدقا معاً في دعواهما﴾

| |
|---|
| وَيَحْلِفُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى الِانْفِرَادِ لِتَغَايُرِ الْحَقَّيْنِ، اود هر يو لپاره به جلا قسم اخستلې شي. د دواړو د حقونو متغير كيدلو په وجه. وَبِأَيِّهِمَا بَدَأَ الْقَاضِي جَازَ او قاضى كه د هر يو قسم مخكې واخلى. جائز دي. لِتَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَهُمَا په دواړو كې د جمع متعذر كيدلو په وجه. وَعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ. اود اولويت نه كيدلو په وجه. وَلَوْ تَشَاحَّا او كه دوى دواړه جګړه اوكړي. أَقْرَعَ بَيْنَهُمَا نو په دوى دواړو كې به قرعه اچوي. تَطْيِيبًا لِقَلْبِهِمَا د دوى دواړو د زړه خوشحالولو دپاره. وَنَفْيًا لِتُهْمَةِ الْمَيْلِ، اود ميلان تهمت لرې كاوه دپاره. ثُمَّ إِنْ حَلَفَ لِأَحَدِهِمَا بيا كه ده د يو كس لپاره قسم اوخوړلو. يَحْلِفُ لِلثَّانِي، نود دوهم لپاره به قسم اخستلې شي. فَإِنْ حَلَفَ بيا كه قسم ئې اوخوړلو. فَلَا شَيْءَ لَهُمَا لِعَدَمِ الْحُجَّةِ، نو دوى لپاره به هيڅ نه وي. د حجت نه كيدلو په وجه. وَإِنْ نَكَلَ أُعْطِيَ لِلثَّانِي يَقْضِي لَهُ بِوُجُودِ الْحُجَّةِ، وَإِنْ نَكَلَ لِلْأَوَّلِ يَحْلِفُ لِلثَّانِي وَلَا يَقْضِي بِالنُّكُولِ، بِخِلَافِ مَا إِذَا أَقَرَّ لِأَحَدِهِمَا لِأَنَّ الْإِقْرَارَ حُجَّةٌ مُوجِبَةٌ بِنَفْسِهِ فَيَقْضِي بِهِ، |

**تشريح:** صاحب د عنايه او صاحب د بنايه رحمهما الله وغيره د شارحينو يو جماعت د تغاير حقين په تعليل كې وئيلي دي. چه ﴿لأن كل واحد منهما يدعي الألف﴾ خو په دې تعليل باندې دا اشكال كيږي. چه په دوى كې هر يو مدعى د مطلق زر درهمو دعويدار نه دې. بلكه دهغه معين زر درهمو مدعى دې. كوم چې د مدعى عليه په قبضه كې دي. لكه چې په وضع شوې مسئله كې ددې تصريح شوې ده. او په باب د ودائع كې نقود متعين كيږي. لكه چې خپل ځائې كې ثابت شوى دى. اوعلامه زيلعى رحمه الله په تبيين كې ددې صراحت كړې دې. حيث قال ﴿تتعين في الودائع المغصوب﴾ نو مذكوره تعليل په تغاير حقين باندې دال نه دې.

سعدى چلپى د تغاير حقين توجيه په يوه بله طريقه كړې ده. او هغه دا چې تغايرد حق د تغاير د مستحق په وجه دې. چه دوى كې د هرمدعى لپاره حق يمين دې. ،لقوله ﷺ،، صاحب د نتائج فرمائي. چه دلته دا توجيه بې ځايه ده. ځكه چې دوى كې هر يو لپاره د حق يمين كيدلو مقتضى صرف داده. چه دوى كې يوكس لپاره تحليف باندې اكتفاء اونكړې شي. او په دې سره دا نه لازميږي. چه دوى كې هر يو لپاره على الانفراد قسم واخستلې شي. (بلكه ددې مقتضاء حصول ددوى دواړو لپاره يو ځائې قسم اخستلو سره هم كيږي) حالانكه دلته كې مقصود هم دادې. چه هر يو لپاره جلا قسم واخستلې شي. ﴿و الأظهر في تعليله ههنا ما ذكره صاحب الكافي في حيث قال و إنما يحلف لكل واحد منهما بانفراده لأن كل واحد منهما إدعاه بانفراده﴾

| |
|---|
| أَمَّا النُّكُولُ باتې شو انكار كول، إِنَّمَا يَصِيرُ حُجَّةً عِنْدَ الْقَضَاءِ نو دا په وخت د قضاء حجت وي. فَجَازَ أَنْ يُؤَخِّرَهُ لِيَحْلِفَ لِلثَّانِي نو دا موخر كولې شي. چې د دوهم لپاره قسم واخستلې شي. فَيَنْكَشِفُ وَجْهُ الْقَضَاءِ، اود قضاء طريقه ښكاره شي. وَلَوْ نَكَلَ لِلثَّانِي أَيْضًا او كه د دوهم لپاره ئې هم د قسم خوړلو نه انكار اوكړو. يَقْضِي بِهَا بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ نو د دواړو په منځ كې به د نيم په نيمه حكم وركولې شي. عَلَى مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ لكه څنګه چې كتاب كې ذكر دى. لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْحُجَّةِ حجت كې د دواړو د برابر كيدلو په وجه. كَمَا إِذَا أَقَامَا الْبَيِّنَةَ لكه كه دواړه مدعيان ګواهان قائم كړي. وَيَغْرَمُ أَلْفًا أُخْرَى بَيْنَهُمَا قاضى به زر( درهم) نور هم پوره كوي. چه هغه به دوى دواړو كې مشترك وى. لِأَنَّهُ أَوْجَبَ الْحَقَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِبَذْلِهِ أَوْ بِإِقْرَارِهِ ځكه چې قابض دوى كې د هر يو لپاره د بذل يا اقرار په طور باندې حق واجب كړو. وَذَلِكَ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ، اودا پخپله دده په حق كې حجت دې. وَبِالصَّرْفِ إِلَيْهِمَا صَارَ قَاضِيًا نِصْفَ حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ بِنِصْفِ حَقِّ الْآخَرِ او قابض زر درهم د دواړو په تقسيمولو سره د هر يو نصف حق د بل د نصف حق په ذريعه ادا كونكې شو. فَيَغْرَمُهُ، نود نصف حق به ضامن وي. |

**تشريح:** صاحب د عنايه رحمه الله د قضاء وجه بيانولو كې درې احتمالات ذكر كړې دي. فرمائي. چه ﴿بان يقضى بالألف لهما جميعاً﴾ صاحب د نتائج فرمائي. چه د ،،او للثاني،، والا احتمل غلط دې. ځكه چې اول ﴿الألف للأول أو للثاني أو لهما جميعاً﴾

لپاره د قابض د انكار قسم نه روسته دوهم لپاره د يو زر حكم كيدلو هيڅ سوال نه پيدا كيږي. نو دلته كې د دوې (دوه) صورتونو احتمال دې. چه قاضى د زر فيصله دواړو لپاره اوكړي. يا صرف اول لپاره اوكړي. چه دا واضحه شي. او تعجب دادې. چه صاحب د عنايه رحمه الله په تعليل كې پخپله وئيلي دي. ﴿لأنه لو حلف للثاني فلا شيء له و الألف كله للأول و لو نكل للثاني أيضاً كان الألف بينهما﴾ په دې تعليل سره دا خبره يقيني كيږي. چه دلته كې صرف دوې (دوه) احتمالات دي. په اصل كې صاحب د عنايه رحمه الله د لغزش منشاء د قضاء د امله په بيان كې د شارحينو دا قول دې. ﴿بان يقضي بالألف لهما أو لأحدهما﴾ چې موصوف،، او لأحدهما،، د اول او ثانى دواړو لپاره عام ګڼړلې دې. حالانكه ،، احدهما،، نه ددوى مراد صرف مدعى اول دې.

## د اول مدعى لپاره د مودع د قسم په انكار د اول لپاره د قاضى د فيصلې حكم

| |
|---|
| وَلَوْ قَضَى الْقَاضِي لِلْأَوَّلِ او كه قاضى د اول لپاره حكم اوكړو. حِينَ نَكَلَ كوم وخت چې قابض د اول لپاره د قسم خوړلو نه انكار اوكړو. ذَكَرَ الْإِمَامُ عَلِيٌّ الْبَزْدَوِيُّ فِي شَرْحِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ نو امام بزدوى رحمه الله په شرح جامع صغير كې ذكر كړې دى. أَنَّهُ يَحْلِفُ لِلثَّانِي چې دوهم لپاره به هم قسم اخستلې شي. وَإِذَا نَكَلَ او س كه هغه انكار اوكړي. يَقْضِي بِهَا بَيْنَهُمَا نو موجوده زر درهم به دواړو كې د مشترك حكم وركولې شي. لِأَنَّ الْقَضَاءَ لِلْأَوَّلِ لَا يُبْطِلُ حَقَّ الثَّانِي ځكه چې اول لپاره حكم وركول د ثانى حق نه باطلوى. لِأَنَّهُ يَقْدَمُهُ إِمَّا بِنَفْسِهِ أَوْ بِالْقُرْعَةِ ځكه چې قاضى هغه پخپل اختيار يا قرعه سره اول جوړ كړې وو. وَكُلُّ ذَلِكَ لَا يُبْطِلُ حَقَّ الثَّانِي او په دوى كې يوه خبره هم د ثانى حق نه باطلوى. |

**تشريح:** كه قابض د مدعى اول لپاره د قسم خوړلو نه انكار اوكړو. او قاضى هم دغه وخت د اول لپاره حكم وركړو. نو شيخ بزدوى رحمه الله په شرح جامع صغير كې ذكر كړې دى. چه (قضاء به نه نافذ كيږي بلكه) مدعى ثانى لپاره به هم قسم اخستلې شي. كه هغه ددې نه انكار اوكړو. نو موجوده زر درهمو نسبت (دكوم حكم چې مدعى اول لپاره شوې وو) به اوس بدليږي. اوداسې حكم به وركولې شي. چه هغه په دواړو كې مشترك دى. ځكه چې اول لپاره حكم وركول، د دوهم حق نه باطلوى. ځكه چې قاضى هغه پخپل اختيار سره اول جوړ كړې وو. يا په قرعه اندازئ كې دده نوم مخكې راوتلې وو. او په دې كې يوه خبره هم داسې نه ده. چه د بل حق ختم كړي. بيا كه هغه د دوهم لپاره قسم اوخوري. نو شيخ بزدوى رحمه الله دده حكم ذكر نكړو. البته ددوى رور ابوالليث رحمه الله وئيلي دى. ﴿فإن حلف يقضي بنكوله للأول﴾ خوكه د يو كس نوم واخلى. او انكار اوكړي. او قسم اوخوري. نود كوم نوم ئې چې نه دې اخستې. دغه رقم به د هغه وى.

## په ذكر شوې صورت كښې د امام خصاف نقطه نظر

| |
|---|
| وَذَكَرَ الْخَصَّافُ او امام خصاف رحمه الله ذكر كړې دى. أَنَّهُ يَنْفُذُ قَضَاؤُهُ لِلْأَوَّلِ، چې د اول لپاره به د قاضى فيصله نافذ دى. وَوَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي الْعَبْدِ او دوى د مسئلې وضع غلام كې ايخودې ده. وَإِنَّمَا نَفَذَ لِمُصَادَفَتِهِ مَحَلَّ الِاجْتِهَادِ او د قاضى فيصله ځكه نافذ شوه. چه دا په محل د اجتهاد كې واقع شوې ده. لِأَنَّ مِنَ الْعُلَمَاءِ مَنْ قَالَ ځكه بعضو عالمانو وئيلي دى. يَقْضِي لِلْأَوَّلِ چې قاضى به مدعى اول لپاره حكم كوى. وَلَا يَنْتَظِرُ انتظار دې نه كوى. لِكَوْنِهِ إِقْرَارًا دَلَالَةً ځكه چې دده انكار كول،، د دلالت په طور اقرار دې. |

**تشريح:** او په صورت كې امام خصاف ذكر كړې دى. چه د مدعى اول په حق كې به د قاضى حكم نافذ كولې شى. نو موجوده پوره زر درهم به د مدعى ثانى د شركت نه بغير هم دده ملاويږي. خو امام خصاف رحمه الله د مسئلې وضع د دراهمو په ځائې غلام كې ايخودې ده. يعنى دواړو مدعيانو په يو غلام كې د خپل مملوك كيدلو اود وديعت ايخودلو دعوه اوكړله. او مدعى عليه د يو مدعى لپاره د قسم خوړلو نه انكار اوكړو. نو قاضى ددې مدعى لپاره د غلام حكم وركړو. نود قاضى حكم به نافذ وى. او دوهم مدعى لپاره به د قسم

اخستلو پورې انتظار نه کوی. ځکه چې مدعی اول لپاره د مدعی علیه د قسم نه انکار کول، دلالة اقرار دی. ګویا ده ددې خبرې اقرار اوکړو. چه مذکوره غلام ددې مدعی ودیعت دې. د قاضی د حکم نافذ کولو وجه داده. چه مذکوره قضاء په مجتهد فیه مسئله کې واقع شوې ده. لکه چې بعض عالمان هم ددې قائل دی. چه قاضی د مدعی اول لپاره حکم وزکړی. او د مدعی ثانی لپاره د قسم اخستلو پورې انتظار نه کوی. ﴿لأن إمتناعه عن اليمين يدل على الإقرار﴾

**ثُمَّ لَا يُحَلِّفُ لِلثَّانِي مَا هٰذَا الْعَبْدُ لِي** بیا مدعی ثانی لپاره به داسې قسم نه اخلی. چه دا غلام زما دې **لِأَنَّ نُكُولَهُ لَا يُفِيدُ بَعْدَ مَا صَارَ لِلْأَوَّلِ**، ځکه چې هغه نه انکار کول به هیڅ ګټور نه وی. حالانکه دا غلام د رومبی مدعی ګرزیدلی دې.

**تشریح:** کله چې قاضی د مدعی اول لپاره حکم ورکړو. نو بیا دوهم مدعی لپاره به مدعی علیه نه داسې قسم نه اخلی. چه دا غلام ددې مدعی نه دې. یعنی په قسم کې صرف دومره وئیل، چې دا غلام ددې مدعی نه دې. هسې فضول دی. ځکه که هغه د قسم خوړلو نه انکار اوکړی. نو غلام دوهم مدعی ته نشی ملاویدلی. ځکه چې دا خو دمدعی اول لپاره ثابت شوې دې. نو په قسم کې قیمت ملاوول هم پکار دی.

**وَهَلْ يُحَلِّفُهُ بِاللهِ مَا لِهٰذَا عَلَيْكَ هٰذَا الْعَبْدُ** او آیا دده ځخه به داسې قسم اخستلې شی. چه په خدائ قسم ددې مدعی په تا باندې دا غلام نشته. **وَلَا قِيمَتُهُ وَهُوَ كَذَا وَكَذَا وَلَا أَقَلُّ مِنْهُ**. او نه ددې قیمت چې دومره دې. او نه ددې نه کم دې؟ **قَالَ**: نو شیخ خصاف رحمه الله فرمائیلی دی. **يَنْبَغِي أَنْ يُحَلِّفَهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ** چې د امام محمد رحمه الله په نیز داسې قسم اخستل پکار دی. **خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ** په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله، **بِنَاءً عَلَى أَنَّ الْمُودَعَ إِذَا أَقَرَّ الْوَدِيعَةَ** په دې بناء، کله چې مودع د یوکس لپاره د ودیعت اقرار اوکړو. **وَدَفَعَ بِالْقَضَاءِ إِلَى غَيْرِهِ** او هغه په حکم د قاضی دوهم سړی ته ورکړې شو. **يَضْمَنُهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ** نو د امام محمد رحمه الله په نیز مودع ددې ضامن وی. **خِلَافًا لَهُ** په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله،

**تشریح:** په عبارت کې په ،، قال ینبغی ،، کې د ،، هل یحلفه ،، ځواب دې. او ،، بناء ،، د قال مفعول له دې. یا ددې د فاعل نه حال دې. مطلب دادې. چه غلام سره به قیمت ملاوولې شی. او دده ځخه به داسې قسم اخستلې شی. اوکه نه؟ چې ﴿بالله ما لهذا عليك هذا العبد و لا قيمته و هو كذا و لا أقل منه﴾ نو امام خصاف وئیلی دی. چې د امام محمد رحمه الله په نیز په ذکر شوې طریقه باندې قسم اخستل پکار دی. په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله د قول، دا اختلاف په لاندینۍ اختلافی مسئلې باندې مبنی ده.

**د مسئلې** ◉ مسئله داده. چه مودع د زید لپاره د ودیعت اقرار کاوه نه روسته ئې اووئیل. چه ما نه غلطی شوې ده. بلکه دا ودیعت خو د فلانی دې. نو په مودع باندې دا ودیعت اول ته ورکول واجب دی. ځکه چې د دوی دواړو لپاره ددې اقرار کول صحیح دې. او ﴿بل هی لفلان﴾ وئیل سره رجوع کول باطل دی. اوس که دې دا ودیعت زید ته د قاضی د قضاء نه بغیر ورکوی. نو د امام محمد رحمه الله په نیز به په دې صورت کې هم د قیمت ضامن وی. او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به ضامن نه وی.

امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. چه د دوهم مقرله کوم حق فوت (او ضائع) شوې دې. هغه صرف د مودع د اقرار په وجه نه دې ضائع شیو. بلکه اول ته د ودیعت ور کاوه په وجه شوې دې. او اول ته ودیعت ورکول د قاضی د قضاء په ذریعه شوی دی. نو مودع به ضامن نه وی. امام محمد رحمه الله فرمائی. چه دا منو. چه ودیعت ورکول د قاضی په حکم سره شوی دی. خو قاضی په دې فیصله باندې هم ده مسلط کړې دې. ځکه چې دده د اقرار په وجه قاضی داسې فیصله ورکړې ده. (هلته ده د ثانی لپاره هم د ودیعت کیدلو اقرار کړې دې). او مودع چې هرکله ودیعت باندې څوک غیر مسلط کړی. نو هغه ضامن کیږی. هرکله چې دا مسئله واضحه شوه. نو اوس د قسم اخستلو مسئله په دې مسئله باندې مبنی کیدل په دې وجه دی. چه د قسم نه انکار کول دلالتاً اقرار دې.



او د امام محمد رحمه الله په نیز دوهم لپاره د ودیعت اقرار کول د ضمان د وجوب په حق کې مفید دی. نو هم دغه ډول به د قسم نه انکار کول هم مفید وی. نو مدعی علیه ځخه به د مدعی ثانی لپاره قسم اخستلې شی. او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز چې لکه څنګه اقرار سره نه ضامن کیږی. نو هم دغه ډول به انکار سره هم نه ضامن کیږی. ﴿فلا فائدة فى التحليف﴾

**وَهٰذِهِ فُرَيْعَةُ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ** او دا مسئله (یعنی د قاضی قسم) ددې مسئلې مختصر فرع ده. **وَقَدْ وَقَعَ فِيهِ بَعْضُ الْإِطْنَابِ وَاللهُ أَعْلَمُ** او په دې مسئله کې لږ شان طوالت (او اوګد والې) واقع شوې دې. والله اعلم

**تشریح:** د هذه مشارالیه د قاضی د قسم اخستل دی. کوم چې په ﴿و هل يحلفه بالله﴾ کې ذکر دی. او د ،، و قد وقع فيه ،، په ځائې ،، فيها ،، وئیل پکار دی. ځکه چې لفظ ،، مسئله ،، مؤنث دې. اوس دا یا خود مذکور په تاویل کې دې. یا په تسامح مبنی ده. ﴿فإن الفقهاء يتسامحون فى العبارات﴾ او لفظ د ،، فريعة ،، د تصغیر په صورت کې راوړلو کې دې اړخ ته اشاره ده. چه مونږ دا مسئله مختصراً ذکر کړې ده. او د ذکر شوې مسئلې، په کومه کې چې دامام ابویوسف او امام محمد رحمه الله اختلاف دې. ډیر فروع دی. چه په هغې کې بعض علامه عینی رحمه الله په بنایه کې ذکر کړی دی. ،، من شاء فليراجع إليه ،، و الله اعلم بالصواب

# كتاب العارية

ژباړه: (دا) کتاب د عاریت (په بیان کې) دې.

**تشریح:** ددې د مناسبت وجه خو د کتاب الودعة په پیل کې بیان شوې ده. چه په دې کې هر یو امانت دې.

**د عاریت لغوی تحقیق** ◉ لفظ د عاریت د یاء په تشدید سره افصح دې. او تخفیف هم جائز دې. لکه څنګه چې قاموس کې دی. علامه مرغینانی رحمه الله دا د عریه په معنی د عطیه منلې دې. چه په دې علامه بدرالدین عینی رحمه الله وغیره مناقشه کړې ده. چه په راروانو صفحاتو کې ذکرکولې شی. ان شاء الله.

جوهری او ابن الاثیر وغیره وئیلی دی. چه دا عاریه طرف ته منسوب دې. ځکه چې د بل نه عاریتاً شئ غوښتل د عیب سبب دې. (مصباح و شرح نقایه) صاحب د لویدیځ عارة طرف ته منسوب منلې دې. چه د اعاره اسم دې. او عار په معنی د عیب طرف ته منسوب کیدلو تردید ئې کړې دې. لکه چې لویدیځ کې دی. چه ﴿العارية أصلها عورية فعليه منسوبة إلى العارة إسم من الإعارة كالغارة من الإغارة و أخذها من العار العيب أو العرى خطاء﴾ وجه د تردید داده. چه لفظ د عار ،، یائی ،، دې. او لفظ دعارية ،، واوی ،، دې. د لغت امامانو ددې صراحت کړې دې. صاحب د نهایه رحمه الله فرمائی. چه په لویدیځ کې کوم ذکر دی. په هغې اعتماد دې. ځکه چې د نبی کریم ﷺ عاریت غوښتل د حدیث نه ثابت دی. که دا شئ د عار (شرم) سبب وو. نو نبی کریم ﷺ به هیڅ کله نه وو طلب کړې.

په مبسوط کې دی. چه دا تعاور په معنی د تناوب دې. ګویا مالک د خپل ملک نه غیر لپاره د نفع اوچتولو نمبر ورکوی. په دې شرط چې دې کله اوغواړی. عاریت واپس واخلی. او خپل نمبر راواپس کړی. ﴿و قاله البطليوسى أيضا﴾ په دې وجه اعاره په مکیل او موزون کې پوره وی. ځکه چې ددې نه نفع اوچتول د عین د استهلاک نه بغیر نه کیږی. او د عین د استهلاک نه روسته بعینه په مکیل او موزون کې نمبر نه راواپس کیږی. تردې چې هغه په حقیقت کې عاریت وی. بلکه نمبر ددې په مثل کې واپس کیږی. ازهری دا د ،، عارالشئ ،، نه منلې دې. په معنی دتلو راتلو، هم ددې نه ابطال یعنی آواره ګرځ (ګرد) (فضول ګرځیدونکی) ته عیار وائی. ځکه چې هغه په خپلو عبثو (او لغویاتو) ګرځی راګرځی. ﴿والعرب تقول أعاره و عاره مثل أطاعه و طاعه﴾.

**فائده** ◉ دعاریت ورکولو په محاسنو کې یو ښه صفت دا هم دې. چه مستعیر د خپل حاجت او ضرورت په وجه مضطر او مجبوره وی. او د الله تعالی ارشاد دې. ﴿أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ﴾ آیا څوک آوری. د بې قراره (ضرورت مند) کله چې هغه ده ته آواز اوکړی. نو معیر مستعیر ته عاریت ورکولو سره د هغه په فریاد اوریدلو او حاجت

پوره کولو کي ګویا د الله تعالی نائب او په حکم د حدیث «تخلقوا باخلاق الله» متخلق باخلاق رباني (د خدائي صفاتو مالك) شو.

### د عاريت شرعي حيثيت

قَالَ: (الْعَارِيَةُ جَائِزَةٌ) عاريت جائز دي. لِأَنَّهَا نَوْعُ إِحْسَانٍ "ځکه چې دا يو ډول احسان دي. وَقَدْ (اسْتَعَارَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دُرُوعًا مِنْ صَفْوَانَ) (١) او پخپله نبی کریم ﷺ د حضرت صفوان ؓ نه زغرې عاريت اخستي وې.

**تشريح:** د عاريت شرعي حکم دادې چه دا جائز دي. (په ورکولو کي ثواب او په اخستلو کي هم څه عیب نشته). شیخ موفق په المغنی کي ونیلی دی. چه د عاريت په جواز او ددې په استحباب باندې د مسلمانانو اجماع ده. ځکه چې دا یو ډول احسان دی. ﴿أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ﴾ پخپله د نبی کریم ﷺ د حضرت صفوان بن امیه ؓ نه د حنین په ورځ دیرش زغرې او د يو روايت مطابق سل زغرې عاريت اخستل، او د حضرت ابوطلحه ؓ نه د هغه مندوب نومې اس د عاريت په طور اخستل د احاديثو نه ثابت دی. لکه چې ① امام ابوداؤد، نسائي، احمد، او حاکم د حضرت صفوان بن امیه ؓ نه، حاکم او دارقطنی د حضرت ابن عباس ؓ نه، حاکم د حضرت جابر بن عبد الله ؓ نه په مختلفو الفاظو سره روايت کړې دي. چه «أن النبي ﷺ إستعار منه دروعاً يوم حنين فقال أغصباً ؟ يا محمد ! ﷺ قال بل عارية مضمونة» نبی کریم ﷺ د جنګ حنین په ورځ ددوی نه (يعنې د حضرت صفوان ؓ نه) ډيرې زغرې عاريةً اخستي وې. هغوی اووئیل. اې محمد ! ﷺ آيا دا په غصب (زبردستی) اخلې؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائيل. بلکه عاريةً ئې اخلم. چه دا به واپس کولې شی. ② او شيخينو ﷺ د حضرت انس ؓ نه روايت کړې دي. «قال كان فزع بالمدينة فاستعار النبي ﷺ فرساً من أبي طلحة ؓ يقال له المندوب فركب فلما رجع قال ما رأينا من شئ و ان وجدناه لبحراً» ، حضرت انس ؓ فرمائي. چه يوه ورځ په مدينه کي يره (خطره) پيدا شوه. نو نبی کریم ﷺ د حضرت ابوطلحه ؓ مندوب نومې اس عاريت سره واخستلو. او هغې باندې سور شو. او لاړلو. بيا ئې هرکله چې واپس تشريف راوړلو. نو وې فرمائيل. چه ما د يرې هيڅ شی اونه کتلو. او ما دا اس اونه موندلو. خو کلاؤ قدمونو والا او تير رفتاره،، ③ په قرآن پاك کي د الله ﷻ ارشاد دي. ﴿وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ﴾ ،، او په غوښتلو نه ورکوی د عام استعمال څيز، ،ماعون هغه معمولي شئ ته وائي. دکوم چې عاريت باندې د ورکولو عام رواج وی. لکه ډولچه، رسئ، کټوئ، ستن، تبر، وغيره، په آيت کي د معمولي شئ غوښتلو په وخت، په نه ورکولو والا باندې مذمت ونیلی شوې دی. نو عاريت ورکول مستحسن شو.

د بعض حضراتو رائې داده. چه عاريت ورکول واجب دی. لکه ابن حزم په محلی کي ونیلی دی. چه «و من سألها محتاجاً ففرض عليه إعارة إياه إذا أوثق بوفائه» کله چې څوك د زيات حاجت په وخت څه شئ اوغواړی. نو عاريت ورکول فرض دی. کله چې ددې د واپس کولو اعتماد وی. ځکه د حضرت ابوهريره ؓ حديث دې. چه «أن النبي ﷺ قال ما من صاحب إبل لا يؤدى حقها قيل يا رسول الله ﷺ و ما حقها؟ قال إعارة و بوباً و إطراق فحلها و منحقة لبنها يوم و ردها»؟ جواب* دادې. چه ابن ماجه او ابن المنذر په اسناد حسن سره د حضرت ابوهريره ؓ نه د نبی کريم ﷺ ارشاد روايت کړې دي. «إذا أديت ذكاة مالك فقد قضيت ما عليك» او ابن ماجه په اسناد حسن سره د فاطمه بنت قيس نه مرفوعاً روايت کړې دي. چه «ليس في المال حق سوى الزكاة»

### د عاريت تعريف او اصطلاحي تحقيق

(وَهِيَ تَمْلِيكُ الْمَنَافِعِ بِغَيْرِ عِوَضٍ) و عاريت د منافعو مالك جوړول دی. د عوض نه بغير،

١) من حديث أمية بن صفوان بن أمية عن أبيه صفوان بن أمية ؓ أخرجه أبوداود في البيوع باب ٨٨ رقم ٣٥٦٢ والنسائي في السنن الكبى (٤١٠١٣) رقم ٥٧٧٩ والبيهقي في السنن الكبرى (١٤٧١٦) رقم ١١٤٧٨ وفي معرفة السنن الآثار رقم ٥٧٧٩)_



**تشريح:** په اصطلاح د شرع کي د عامو عالمانو په نيز د عوض نه بغير د تمليك منافعو ته عاريت وائي. کوم کس چې مالك جوړوی. هغه ته معير وائي او کوم کس چې مالك جوړ کړې شی. هغه ته مستعير، او کوم شئ چې د منفعت مالك جوړ کړې شی. هغه ته عاريت او مستعار وائي. د افواه اودی شعر دې ~ إنما لنعمة قوم متعة و حياة المرء لثوب مستعار

**فائده** ◉ په تعريف کي د بلا عوض قيد سره اجاره اووتله. چه په دې کي اګرچه د منافعو تمليك کيږي. خو بلاعوض نه کيږي. عاريت ورکول يو ډول نيکي او احسان دې. او عقد تبرع (نيکي) صرف ايجاب باندې موقول کيږي. په دې وجه فتاوى عالمگیری کي دی. چه د عاريت رکن صرف د معير د اړخه ايجاب کيدل دی. پاتې شو د مستعير د اړخه قبلول، نو زمونږ د اصحاب ثلاثه په نيز د احسان په رو سره شرط نه دې. بيا د ايجاب قولي کيدل ضروری دی. لکه چې خانيه کي دی. که يو کس عاريت اوغوښتلو او معير خاموش پاتې شو. نو دا به عاريت نه وی. البته د قبول قولي کيدل هيڅ ضروری نه دی. فعلي هم کيداې شی. مثلاً معير اووئيل. چه دا کپړه د عاريت په طور باندې واخله. مستعير خپل لاس ور وړاندې کړو. او کپړه ئې واخستله.

وَكَانَ الْكَرْخِيُّ رَحِمَهُ اللهُ يَقُولُ: او امام کرخی ﷫ فرمائي. هُوَ إِبَاحَةُ الْإِنْتِفَاعِ بِمِلْكِ الْغَيْرِ، چې عاريت د غير د ملك نه د انتفاع اخستلو اباحت دې.

**د امام کرخی ﷫ رائې** ◉ په کتاب کي چې عاريت ته تمليك ونيلی شوی دی. دا قول د شيخ ابوبکر رازی ﷫ په رائې باندې دې. شيخ ابوالحسن کرخی ﷫ فرمائي. چې دغير د ملك نه انتفاع جائز کيدلو ته عاريت وائي. د امام شافعی او امام احمد ﷫ قول هم دادې. علامه مرغيناني ﷫ ددې قول څلور وجوهات ذکر کړی دی.

لِأَنَّهَا تَنْعَقِدُ بِلَفْظَةِ الْإِبَاحَةِ، ځکه چې عاريت د اباحت لفظ سره منعقد کيږي.

**تشريح:** ړومبئ وجه: ړومبئ وجه داده. چه د عاريت د اباحت لفظ سره منعقد کيږي. که معير دا اووائي. چه «ابحت لك هذا الثوب» نو دا عاريت وی. ځکه چې تمليك د اباحت لفظ سره نه منعقد کيږي.

وَلَا يُشْتَرَطُ فِيهَا ضَرْبُ الْمُدَّةِ، او په دې کي موده بيانول شرط نه دی. وَمَعَ الْجَهَالَةِ لَا يَصِحُّ التَّمْلِيكُ حالانکه مجهول کيدلو سره تمليك نه صحيح کيږي.

**تشريح:** دويمه وجه: دويمه وجه داده. چه عاريت کي موده بيانول شرط نه دی. يعنې د مودې بيانولو سره د منفعت مقدار نه خبرول ضروری نه دی. حالانکه مودې مجهول کيدلو سره د منافعو تمليك نه صحيح کيږي. لکه څنګه چې اجاره کي دی

وَلِذَلِكَ يَعْمَلُ فِيهَا النَّهْيُ، دغه ډول دې کي نهی عمل کوی.

**تشريح:** دريمه وجه: داده. چه عاريت کي د معير منع کول موثر کيږي. يعنې که معير دا اووائي. چې بيا لپاره عاريت نه کار مه اخله. نو دا منع ګټور کيږي. تردې چې دې سره عاريت ماتيږي. که عاريت تمليك وو. نو معير ته به د منع کاوه اختيار نه وو. لکه هبه او اجاره کي چې دا اختيار نه وی.

وَلَا يَمْلِكُ الْإِجَارَةَ مِنْ غَيْرِهِ، او مستعير بل چا ته په اجاره باندې د ور کاوه مالك نه جوړيږی.

**تشريح:** څلورمه وجه: داده. چه مستعير ته دا اختيار نشته. چه هغه بل چاته دعاريت شئ اجاره باندې ورکړی. که عاريت تمليك وو. نو اجاره باندې ورکول به جائز نه وو. ځکه چې کوم کس دڅه شئ د عوض نه بغير مالك وی. هغه بل په عوض سره ددې مالك جوړولې شی. لکه موهوب له.

وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّهُ يُنْبِئُ عَنِ التَّمْلِيكِ، او موږ دا وايو. چه لفظ د عاريت تمليك نه خبر ورکوی.

**تشريح:** د امام کرخی ﷫ په ځواب کي موږ وايو. چه په لفظ د عاريت نه د تمليك معنى راوځي. ځکه چې دا

د ،،عریه،،(په معنی د عطیه) نه مشتق دې. په دې وجه عاریت د تملیك معنی سره منعقد کیږی. ﴿بان یقول ملکتك منفعة داری هذه شهراً﴾ (ذکره في المبسوط) ممکن ده.چه په دې څوك دا اووائی.چه منافع خو اعراض دی.چه دا پاته نه پاتې کیږی.نودا به د تملیك قابل نه وی.

فَإِنَّ الْعَارِيَةَ مِنَ الْعَرِيَّةِ وَهِيَ الْعَطِيَّةُ ځکه چې عاریت د عطیه په معنی ده. وَلِهٰذَا تَنْعَقِدُ بِلَفْظِ التَّمْلِيكِ، په دې وجه عاریت د تملیك لفظ سره منعقد کیږی.

په دې باندې علامه عینی رحمه الله دا اعتراض کړې دې.که ددې نه د علامه مرغینانی رحمه الله مراد دادې.چه عارية د عریه نه مشتق دې.لکه څنګه چې شیخ انزاری ونیلی دی.نو داسې نه ده.ځکه چې عارية اجوف واوی دې.په دې وجه اهل لغت دا په باب عور کې ذکر کړې دې.او عریه ناقص دې.چه په دې کې لام کلمه حرف علت دې.په دې وجه اهل لغت دا په باب عرو کې ذکرکړې دې.حالانکه اشتقاق دې ته وائی.چه بین اللفظین حروفو کې ترتیب او معنی کې تناسب وی.لکه ضرب، چې دا د ضَرب نه مشتق دې.که څوك دا اووائی.چه دا کومه خبره تا ذکر کړې ده.په اشتقاق صغیر کې کیږی.پاتې شو اشتقاق کبیر، نو په دې کې صرف لفظی تناسب کافی دې.په ترتیب کې تناسب ضروری نه دې.لکه ،،جند،، چې دا د جذب نه مشتق دې.

**د علامه عینی دا اعتراض جواب◉** ځواب دادې.چه کله اشتقاق مطلق اووئیلی شی.نو ددې نه اشتقاق صغیر مراد کیږی.ددې نه علاوه دلته د معنوی مناسبت نه کیدلو په وجه اشتقاق کبیر کیدای هم نشی. ځکه چې د عاریت ماده په تناول او تداول باندې دال ده.اود عریه معنی په ایتان باندې دلالت کوی. ﴿یقال عروت عرواً﴾ د عطیه غوښتلو لپاره قصد کول.اوکه د صاحب هدایه رحمه الله مقصد دادې.چه د عاریت معنی د عریه نه اخستې شوې ده.نو داسې هم نه ده.ځکه چې عریه د کجورې هغه ونې ته وائی.چه ددې مالك بل کس ته د میوو خوړلو په غرض سره یو کال لپاره ورکړې وی.اوکه د موصوف مقصد دا وی.چه د عارية حکم د عریه د حکم پشان دې.نودا هم صحیح نه ده.ځکه چې معیر کله اوغواړی.د عاریت شی واپس اخستلې شی. ﴿و المعری لیس له ذالك﴾ (بنایه)

وَالْمَنَافِعُ قَابِلَةٌ لِلْمِلْكِ كَالْأَعْيَانِ. او منافع د اعیان پشان قابل د ملك وی. وَالتَّمْلِيكُ نَوْعَانِ: او تملیك په دوې (دوه) قسمه دې. بِعِوَضٍ، یو په عوض وَبِغَيْرِ عِوَضٍ، دوهم بغیر د عوض نه. ثُمَّ الْأَعْيَانُ تَقْبَلُ النَّوْعَيْنِ، بیا اعیان د دواړو قسمونو قابل دی. فَكَذَا الْمَنَافِعُ، نو دغه ډول به منافع هم وی. وَالْجَامِعُ دَفْعُ الْحَاجَةِ، او امر جامع په دې دواړو کې دفع د حاجت ده.

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله په ﴿والمنافع قابلة للملك كالأعيان﴾ سره ددې ځواب ورکوی.چه د اعیان پشان منافع هم قابل تملیك دی.ځکه چې تملیك دوې (دوه) قسمه باندې وی.یو بالعوض وی.او دوهم بلا عوض وی.او اعیان ددې دواړو قسمونو قابل دی.(تملیك عین بالعوض لکه هبه او صدقه) نو منافع به هم ددې دواړو قابل وی.(نو تملك منافع بالعوض لکه اجاره او تملیك بلا عوض لکه عاریت) ځکه چې امر جامع یعنی دفع د حاجت دواړو کې موجود ده. ﴿قال الزیلعی رحمه الله کل ما جاز فیه التملیك ببدل جاز فیه التملیك بغیر بدل الانکاح﴾

**تنبیه◉** صاحب د عنایه رحمه الله په دې مقام کې درې وجوهاتو سره بحث کړې دې.

**بحث اول اود هغې**

**جواب◉** چې د علامه مرغینانی رحمه الله ذکر شوې کلام په تعریفاتو کې استدلال دې.حالانکه تعریفات استدلال نه قبلوی.ځکه چې تعریفات د تصوراتو د قبیلې څنې دی.او استدلال په تصدیقاتو کې کیږی.

ځواب*دادې.چه دلته کې استدلال نفس تعریف باندې نه دې.(کوم چې د تصوراتو د قبیلې څنې دې) بلکه په هغه ضمنی حکم باندې دې.دکوم قصد چې معرف کوی. ﴿بان یقول هذا التریف هو الصحیح هذا التعریف هو الحق



هذا التعریف صحیح جامع مانع وغیره﴾ لکه چې دا امر پخپل ځانې باندې معلوم شوې دې.چه د منع، نقض او معارضه وغیره کوم اعتراضات تعریفاتو باندې وارد کیږی.هغه په ضمنی احکامو باندې کیږی.په نفس تعریفاتو باندې نه کیږی.

**بحث دوم اود هغې جواب◉** مذکوره قیاس ﴿والمنافع قابلة للملك كالأعيان﴾ د موضوعاتو څنې دې.چه دا صحیح نه دې.ځکه قیاس لپاره دا شرط دې.چه کوم شرعی حکم ثابت بالنص وی.هغه بعینه هغه فرع اړخ ته متعدی وی.کوم چې ددې نظیر دې.او دلته هیڅ نص موجود نه دې.او موضوعات شرعی حکم هم نه دې.

ځواب*دادې.چه د علامه مرغینانی رحمه الله مقصد په عرف د شرع کې د تملیك بلاعوض منافعو لپاره د لفظ عاریت موضوع کیدلو په ذریعه قیاس ثابتول نه دی.تردې چې موضوعاتو کې د قیاس کیدلو اعتراض وارد شی.بلکه اعیان کوم چې د تملیك د دواړو قسمونو قابل دی.د هغې قیاس نه دا ثابتول دی.چه منافع هم ددې دواړو قابل دی.او په دې اثبات سره د معترض صرف دا وهم لرې کول دی.چه اعراض چونکه پاتې نه پاتې کیږی.په دې وجه دا قابل د تملیك نشی کیدلې اودا خبره ښکاره ده.چه د اعیانو د تملیك دواړه قسمونه قبلول، یو شرعی حکم دې.کوم چې په دې نص سره ثابت دې.کوم چې د بیع او هبه په جواز باندې دلالت کوی. ﴿فیصح تعدیته إلی قبول المنافع لهما أیضا﴾

**بحث ثالث اود هغې جواب◉** د قیاس لپاره دا هم شرط دې.چه حکم شرعی دې فرع اړخ ته متعدی وی. کوم چې ددې نظیر دې.او دلته منافع د اعیان نظیر نه دې.

ځواب*دادې.که د نظیر نه کیدلو نه مراد دادې.چه من کل الوجوه نظیر نه دې.نودا نه منو.خو په دې سره معترض ته هیڅ فائده نشته.ځکه چې د قیاس د صحت لپاره د فرع اصل سره په ټولو جهاتو کې اشتراك شرط نه دې.بلکه ددوی دواړو صرف د حکم په علت کې شریکیدل کافی دی.لکه څنګه چې د اصول فقه نه معلوم دی.اوکه د نظیر نه کیدلو نه مراد داوی.چه علت په حکم کې هم نظیر نه دې.نو نه د منلو قابل نه دې.ځکه چې دلته کې د تملیك قابل کیدلو کوم حکم دې.د هغې علت دفع د حاجت ده.او په دې علت کې اعیان اومنافع دواړه مشترك دی. (نتائج)

**په لفظ د اباحت سره د عاریت حکم**

وَلَفْظَةُ الْإِبَاحَةِ اُسْتُعِيرَتْ لِلتَّمْلِيكِ، او د اباحت لفظ مستعار اخستې شوې دې.تملیك دپاره، كَمَا فِي الْإِجَارَةِ، لکه څنګه چې اجاره کې دی. فَإِنَّهَا تَنْعَقِدُ بِلَفْظَةِ الْإِبَاحَةِ، چې دا د اباحت لفظ سره منعقد کیږی. وَهِيَ تَمْلِيكٌ حالانکه دا تملیك دې. وَالْجَهَالَةُ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ لِعَدَمِ اللُّزُومِ او جهالت جګړې ته نه رسوی.د نه لازمیدلو په وجه، فَلَا تَكُونُ ضَائِرَةً. نودا به مضر نه وی. وَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَثْبُتُ بِالْقَبْضِ او ځکه چې ملك قبضې سره ثابتیږی. وَهُوَ الِانْتِفَاعُ. او قبضه هم داده.چه انتفاع واخلی. وَعِنْدَ ذَلِكَ لَا جَهَالَةَ، او د انتفاع په وخت هیڅ جهالت نشته. وَالنَّهْيُ مَنْعٌ عَنِ التَّحْصِيلِ او نه د منافع حاصلولو نه ممانعت دې. فَلَا يَتَحَصَّلُ الْمَنَافِعُ عَلَى مِلْكِهِ. نو منافع به ددې په ملك باندې نه حاصلیږی. وَلَا يَمْلِكُ الْإِجَارَةَ لِدَفْعِ زِيَادَةِ الضَّرَرِ او د اجارې نه مالك کیږی.د زیاتی ضرر لرې کاوه په غرض سره، عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى لکه چې دا به موږ ذکرکړو.ان شاء الله تعالی.

**تشریح:** ددې ځائې نه د امام کرخی رحمه الله د قول د وجوهات اربعه جوابونه دی.

① جواب د وجه اول* دادې.چه په لفظ د اباحت سره د اعارې د جواز وجه داده.چه لفظ د اباحت مجازاً د تملیك په معنی کې اخستې شوې دې.لکه څنګه چې اجاره د اباحت لفظ سره منعقد کیږی.حالانکه اجاره کې د منافع د تملیك معنی موجود وی.چه په دې کې هیڅ جګړه نشته.

② جواب د وجه ثانی *دادې.چه دلته داسې جهالت نشته.چه جګړې ته اورسیږی.ځکه چې عاریت څه لازمی عقد نه دې.بلکه کله چې معیر اوغواړی.فسخ کولې شی.نود مودې مجهول کیدل هیڅ مضر نه دی.ددې نه علاوه عاریت کې د قبضې مطلب دادې.چه ددې عاریت کې ملك هغه وخت ثابتیږی.کله چې قبضه اوشی.

نه انتفاع حاصله کړي. او د انتفاع په وخت هيڅ جهالت نشته.

③ جواب د وجه ثالث* دا دي. چه د معير منع کول موثر کيدل په دې اعتبار سره نه دی. چه عاريت کې تمليك نشته. بلکه په دې اعتبار سره دی. چه معير د مال مستعار نه د نفع اخستلو ممانعت او کړو. نو اوس به منافع دده په ملك باندې نه حاصليږي.

④ جواب د وجه رابع* دا دي. چه مستعير بل کس ته په اجاره باندې ځکه نشي ورکولې. چه په دې سره معير باندې زيات ضرر لاحق نشي. ځکه چې معير مستعير د منافعو حاصلولو مالك په دې طريقه جوړ کړې دی. چې کله او غواړي. واپس به اخل. او اجاره باندې د ورکولو په صورت کې معير واپس نشي اخستلې. ځکه چې عقد اجاره شرعاً لازمي ده.

## عاريت په کومو الفاظو سره صحيح دي ؟

قَالَ: ﴿وَتَصِحُّ بِقَوْلِهِ أَعَرْتُكَ﴾ او عاريت صحيح دې. په دې ونيلو چې ما تاته عاريت ( ستا په غوښتلو ) درکړو. لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِيهِ ځکه چې دا لفظ په دې کې صريح دې. ﴿وَأَطْعَمْتُكَ هَذِهِ الْأَرْضَ﴾ او خوراك لپاره مې دا مځکه درکړله. لِأَنَّهُ مُسْتَعْمَلٌ فِيهِ ځکه چې دا لفظ هم په دې معنى کې مستعمل دې.

**تشريح:** مذکوره عاريت په لاندينو الفاظو سره صحيح کيږي. ﴿ أعرتك ﴾ ځکه چې دا لفظ عاريت لپاره صريح او حقيقت دې. ﴿ أطعمتك أرضي ﴾ ځکه چې دا لفظ هم په دې معنى کې مستعمل دې. ځکه چې کله د لفظ ،، اطعام ،، اضافت غير ماكول العين طرف ته او شي. نو هغې نه مجازاً حال باندې د محل اطلاق کولو سره د هغې پيداوار مراد اخستلې شي. دلته يو سوال په ذهن کې راتلې شي. هغه دا چه،

سوال* دا استعمال مجاز متعارف وی. او مجاز متعارف هم صريح وی. لکه څنګه چې اصول کې ذکر دی. نو په دواړو عبارتونو کې هيڅ فرق اونشو؟ ددې سوال جواب دا دې.

جواب* چه ذکر شوی دواړه لفظونه صريح دی. خو يو حقيقت دې. او دوهم مجاز دې. ځکه د اصولو د عالمانو په نيز صريح هغه دې. چه د هغې مراد د خپل ذات نه واضح وی. نو دا حقيقت غير مهجوره او مجاز متعارف دواړو ته شامل دې. نو علامه مرغيناني رحمه الله مستعمل ونيلو سره اشاره او کړله. چه ړومبې لفظ حقيقت دې او دوهم مجاز دې.

﴿وَمَنَحْتُكَ هَذَا الثَّوْبَ﴾ و او مې بخښله تاته دا کپړه، ﴿وَحَمَلْتُكَ عَلَى هَذِهِ الدَّابَّةِ﴾ او سور مې کړلې ته په دې خاروی باندې، ﴿إِذَا لَمْ يُرِدْ بِهِ الْهِبَةَ﴾ کله چې په دې دواړو سره هبه مراد نه وی. لِأَنَّهُمَا لِتَمْلِيكِ الْعَيْنِ، ځکه چې دا دواړه لفظونه د عين تمليك لپاره دی. وَعِنْدَ عَدَمِ إِرَادَتِهِ الْهِبَةَ تُحْمَلُ عَلَى تَمْلِيكِ الْمَنَافِعِ تَجَوُّزًا. او د هبه نه مراد کيدلو په وخت مجازاً په تمليك د منافعو محمول کولې شي.

**تشريح:** دې عبارت سره هم عاريت صحيح دې. ځکه چې د ،، محتك ،، معنى ده. ﴿ أعطيتك ، يقال منحه ( ف،ض) منحاً الشيء ﴾ په معنى د عطاء کولو ( او بخلو ). ددې نه منحه او منيحه هم دی. دا د پيو والا هغه وزه يا اوښې ته ونيلې شی. کومه چې چاته د پيو ورکولو لپاره ورکړې شی. او کله چې شيدې ختم شی. نو مالك ته ئې واپس کړی. بيا په هره عطاء ( ورکړه او بخشش ) کې ددې استعمال زيات شو. په دې وجه ﴿ حمل الأمير فلاناً ﴾ ونيلې شی. او ددې نه مراد تمليك وی. نو په منحت او حملت کې هر يو د تمليك منفعت او تمليك عين لپاره حقيقت دې. نو د نيت کيدلو په وخت به عاريت باندې محمول وی. چه دا متيقن دې. ( خو دا هغه وخت دی. کله ئې چې دې سره د هبې نيت نه وی کړی).

**د علامه نسفي رحمه الله اشکالات ®** علامه نسفي رحمه الله په الكافي کې د علامه مرغيناني رحمه الله په عبارت ﴿ منحتك هذا الثوب ..... إلى..... يحمل على تمليك المنافع تجوزاً ﴾ باندې په بعضو وجو سره اشکال قائم کړې دې. ① اول دا چې د ،، إذا لم يرد به ،، په ځاني ،، بهما ،، ونيل پکار دی. په دې دليل چې په تعليل کې ،، لانهما ،، تثنيه راوړلې دې.



جواب* ددې جواب داسې ممکن دې. چه د به ضمير ،، مذکور ،، طرف ته راجع دې. لکه چې ايت کې دی. ﴿عَوَانٌ بَيْنَ ذَلِكَ﴾ ② دوهم دا چې موصوف دلته ،، منحت ،، او ،، حملت ،، دواړه لفظونه د تمليك عين لپاره حقيقت او تمليك منفعت لپاره مجاز ګرځولي دي. او په کتاب الهبه کې ئې د هبې الفاظ بيانولو کې ونيلي دی. ﴿ و حملتك على هذه الدابة إذا نوى بالحملان الهبة ﴾ او ددې علت ئې دا بيان کړې دې. ( لأن الحمل هو الإركاب حقيقة يكون عارية لكنه يحتمل الهبة ﴾ ③ دريم دا چې دواړه لفظونه د تمليك عين لپاره حقيقت شو. او د عدم نيت په وخت د لفظ نه حقيقت مراد اخستلې شي. نو د هبې اراده نه کولو په وخت تمليك منفعت باندې محمول کول پکار نه دی. بلکه هبه باندې محمول کول پکار دی. بيا موصوف د مستصفى شرح نافع نه نقل کړې دی. چه دا هم کيدای شی. چه دواړه لفظونه د تمليك عين لپاره حقيقت او تمليك منفعت لپاره مجاز وی. په کتاب العاريه کې د صاحب هدايه رحمه الله ميلان هم دې طرف ته دې. په دې صورت کې به تقدير د عبارت دا وی. ﴿ إذا لم يرد الهبة و أراد به العارية ﴾ او دا احتمال هم دې. چه په تمليك منفعت کې دواړه لفظونه حقيقت وی. او تمليك عين لپاره مجاز وی. فخر الاسلام رحمه الله په مبسوط کې او علامه مرغيناني رحمه الله په کتاب الهبه کې هم دې طرف ته اشاره کړې ده. په دې صورت کې به ﴿ إذا لم يرد به الهبة ﴾ د تاکيد لپاره وی. او دا احتمال هم دې. چه دواړو لفظونو لپاره دواړه معاني حقيقي وی. او په دې کې يو ته ترجيح په دې وجه وی. چه دا ادنى الامرين دې. نو د تيقن په وجه به هم په دې باندې محمول کولې شي. ( کفايه )

قَالَ: ﴿وَأَخْدَمْتُكَ هَذَا الْعَبْدَ﴾ او د خدمت لپاره مې درکړو، تاته دا غلام، لِأَنَّهُ أَذِنَ لَهُ فِي اسْتِخْدَامِهِ ځکه چې دا د غلام د خدمت اخستلو اجازت دې. ﴿وَدَارِي لَكَ سُكْنَى﴾ او زما کور ستا د اوسيدلو لپاره دې. لِأَنَّ مَعْنَاهُ سُكْنَاهَا لَكَ ځکه ددې معنى داده. چه ددې کور اوسيدل ستا لپاره دی.

**تشريح:** په اخدمتك عبدي ونيلو سره به هم عاريت وی. ځکه چې دا د استخدام اجازت دې. تمليك نه دې په ﴿ داری لك سكنى ﴾ سره به هم عاريت وی. ځکه چې لفظ د سکنى منفعت کې محکم دې. نو د ،، لك ،، لام به په تمليك د منافعو محمول کولې شی. ځکه چې دا ددې محتمل دې.

﴿وَدَارِي لَكَ عُمْرِي سُكْنَى﴾ او زما کور ستا د واړه عمر اوسيدلو لپاره دی. لِأَنَّهُ جَعَلَ سُكْنَاهَا لَهُ مُدَّةَ عُمْرِهِ. ځکه چې ده ددې کور اوسيدل، د هغه لپاره د هغه د واړه عمر لپاره کړل. وَجَعَلَ قَوْلَهُ سُكْنَى تَفْسِيرًا لِقَوْلِهِ لَكَ او لفظ د سکنى ( اوسيدل ) ئې د خپل قول ،، لك ،، تفسير کړو لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ تَمْلِيكَ الْمَنَافِعِ ځکه چې دا تمليك د منافعو ته هم محتمل دې. فَحُمِلَ عَلَيْهِ بِدَلَالَةِ آخِرِهِ. نو ددې د آخر دلالت سره په دې محمول کړې شو.

**تشريح:** په ﴿ داری لك عمرى سكنى ،، ونيلو سره هم عاريت دې ځکه چې ده د خپل کور سکونت ( اوسيدل ) دده لپاره تر عمره پورې او ګرځولو. ځکه چې لفظ سکنى ونيل د لفظ ،، لك ،، تفسير دې. ځکه چې دا څنګه هبې ته محتمل دې. دغه ډول تمليك د منافعو ته هم محتمل دې. نو آخرى کلمه يعنى د سکنى دلالت سره به هم په دې معنى باندې محمول کولې شی.

قَالَ: ﴿وَلِلْمُعِيرِ أَنْ يَرْجِعَ فِي الْعَارِيَةِ مَتَى شَاءَ﴾ او معير ته اختيار دې. چه واپس واخلي عاريت کله چې غواړي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه د نبی کريم ﷺ ارشاد دې. { الْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ چې ورکړې شوې شی به واپس کولې شی. وَالْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ }[1] او غوښتلې شی به واپس ورکولې شی. وَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ تُمْلَكُ شَيْئًا فَشَيْئًا عَلَى حَسَبِ حُدُوثِهَا و

١) من حديث أبي أمامة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى البيوع بب ٨٨ رقم ٣٥٦٣ والترمذي فى الوصايا باب ٥ وابن ماجه فى الصدقة باب ٥ وأحمد فى المسند (٣٦٧\٥) والداقطنى فى سننه (٤٠\٣) رقم ١٦٥ والنسائى فى السنن الكبرى (٤١١\٣) رقم ٥٧٨٢_

خکه چې منافع په لږ لږ ملك کي راغلی دی.ددې د پیدا کیدلو حساب سره، **فَالتَّمْلِيكُ فِيمَا لَمْ يُوجَدْ لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الْقَبْضُ** نو کوم چې اوس نه دی موندلی شوی.هغې سره قبضه نه ده متصل شوې. **فَيَصِحُّ الرُّجُوعُ عَنْهُ** نو د هغې نه رجوع کول صحیح دی.

**تشريح:** معیر چې کله اوغواړي.خپل شئ واپس اخستلي شی.عاریت مطلقه وی.او که مؤقته ( نیتیه دار) وی.په دلیل ددې حدیث چې «المنحة مردودة» ( ابوداؤد، ترمذی ، ابن حبان، طبرانی عن ابی امامه، بزار عن ابی عمر، ابن عدی عن ابن عباس ، طبرانی عن انس رضي الله عنه) او په دې وجه هم چې منافع خومره قدرې پیدا کیږي.هم هغه حساب سره لږ لږ په ملك کي راځی.نو کوم منافع چې اوس په وجود کي نه دی راغلی.هغې سره د تملیك قبضه نه ده متصل شوې.اود قبضې نه وړاندې رجوع کول صحیح نه دی.البته دامام مالك رحمه الله په نیز په اعاره موقته ( نیتیه داره) کي د وخت نه وړاندې رجوع کول جائز نه دی. «لیکون حکمهما عنده کالاجارة»

### عاریت امانت دي او که مضمون؟

**قَالَ:** (**وَالْعَارِيَةُ أَمَانَةٌ**) او عاریت امانت دي. **إِنْ هَلَكَتْ مِنْ غَيْرِ تَعَدٍّ** که د تعدی ( د تصرف) نه بغیر هلاك شي. (**لَمْ يَضْمَنْ**) نو ضامن به نه وی.

**تشريح:** زموږ په نیز دعاریت شئ امانت وی.اوس که هغه پخپل حال قائم وی.نودا بلاخلاف واپس کول ضروری دی.اوکه هغه ضائع شو.نو کتلې به شی.چه د مستعیر تعدی او زیاتې کولو سره ضائع شوې دې.او که بغیر د تعدی (او حرکت) نه هلاك شوې دې.که د مستعیر د تعدی نه بغیر ضائع شوې وی.نو په ده به ضمان لازم نه وی.قاضی ابن شبرمه د کوفې د قضاء په زمانه کي متواتر دیرش کاله پورې په دې مسئله باندې عمل کونکي پاتې شوې وو.امام مالك، سفیان ثوری ، اوزاعی رحمهم الله هم ددې قائل دی.اوهم دا د حضرت علی ، ابن مسعود، عمر، جابر رضي الله عنه،اود حسن، ابراهیم نخعی ، شعبی ، عمربن عبدالعزیز رحمهم الله نه نقل دی.د امام مالك رحمه الله نه دا هم نقل دی.که عاریت حیوان (څاروې) وی.نو ضامن به نه وی.او که زیورات او کپړې وغیره وی.نو ضامن به وی.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ:** امام شافعی رحمه الله فرمائی. **يَضْمَنُ**؛ چې ضامن به وی.

**تشريح:** د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله په نیز که عاریت هلاك شی.نو مستعیر به ضامن وی.هم دا د عطاء او اسحاق قول دې.اودا د حضرت ابن عباس او حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه هم نقل دی.( د امام شافعی رحمه الله نه یو قول دا هم نقل دې.چه دا په معتاد ( عام) استعمال سره هلاك شو.نو ضامن به نه وی.گنې ضامن به وی.خو دا قول ددوی په نیز ضعیف دې) د ربیعه په نیز واړه عاریتونه مضمون دی.په روضه کي دی.چه د عاریت شئ د مستعیر په قبضه کي ضائع شو.نو هغه به ضامن وی.که ددې ضائع کیدل په آسمانی آفت سره وی.یا د مستعیر په فعل سره وی.او دده په کوتاهئ ( بې غورئ) سره وی.او که د کوتاهئ نه بغیر وی.په حاوی حنابله کي دی. «إن شرط نفی ضمانها سقط الضمان» د عثمان قول چې مستعیر د حیوان او عقل (دیت) نه دعلاوه ضامن دې.اوکه په دې کي د ضمان شرط اوکړې شو.نو د ددې به هم ضامن وی.د اختلاف اصل بنا (بنیاد) دادې.چه عاریت زموږ په نیز علی الاطلاق امانت دې.دا نه چې صرف په وخت د استعمال امانت دې.لکه څنګه چې امام شافعی او امام احمد رحمهما الله فرمائی.ددوی روایت شوی دلیلونه دادی.

① د ابوهریره رضي الله عنه حدیث چې ددې تخریج امام ترمذی رحمه الله کړې دې. «قال رسول الله ﷺ أد الأمانة إلى من ائتمنك و لا تخن من خانك» نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلي دې.چه چا تا سره څه شئ امانت کیخودلو.نود هغه امانت ادا کړه.او چا چې ستا خیانت اوکړو.ته دهغه خیانت مه کوه.

② د سمره رضي الله عنه حدیث چې ددې تخریج دامام نسائی رحمه الله نه علاوه اصحاب خمسه کړې دې. «عن النبی ﷺ قال علی الید ما أخذت حتی تؤدی» نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلي دې.چه لاس باندې به هغه شئ واجب پاتې وی.کوم



چې ده اخستې دې.ترکومه پورې نې چې ادا نکړي.

③ د حضرت ابوامامه رضي الله عنه حدیث دې.چه ددې تخریج امام ابوداؤد، ترمذی او ابن حبان رحمهم الله کړې دې.او طبرانی دا په مسند شامیین کي د حضرت انس رضي الله عنه نه، او حافظ بزار د حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت کړې دې. «انه سمع النبی ﷺ یقول فی حجة الوداع العاریة مؤداة» حضرت ابو امامه رضي الله عنه فرمائی.چه ما نبی کریم ﷺ نه د الوداعی حج په خطبه کي دا فرمان آوریدلي دې.چه په عاریت اخستې شوې شئ به اداکولي شي.

**لِأَنَّهُ قَبَضَ مَالَ غَيْرِهِ لِنَفْسِهِ لَا عَنِ اسْتِحْقَاقٍ** خکه چې ده د غیر مال بغیر د استحقاقه پخپله قبضه کي اخستې دې. **فَيَضْمَنُهُ** نو ضامن به وی.

**تشريح:** دا د امام شافعی رحمه الله عقلی دلیل دې.چه مستعیر د غیر مال د استحقاق نه بغیر خپلې فائدې لپاره اخستې دې.نو ضامن به وی.ممکن ده.چه په دې څوك دا اووائی.چه ده په عاریت باندې کومه قبضه کړې ده.دا نې د مالك په اجازت سره کړې ده.اوکومه قبضه چې د مالك په اجازت سره وی.هغه موجب د ضمان نه وی ؟

**وَالْإِذْنُ ثَبَتَ** او اجازت ثابت شوې دې. **ضَرُورَةَ الِانْتِفَاعِ** د انتفاع په اړتیا سره. **فَلَا يَظْهَرُ فِيمَا وَرَاءَهُ** نود اړتیا د مقام نه علاوه کي به نه ښکاره کیږي.

**تشريح:** په دې عبارت سره ددې خواب دې.چه د مالك د اړخه اجازت صرف ددې اړتیا په لحاظ سره دې.چه مستعیر ددې نه فائده واخلي.اوکوم شئ چې د اړتیا مطابق ثابت وی.هغه د اړتیا محل پورې قائم وی.او اړتیا صرف د استعمال په حالت کي دې.نو ددې نه په علاوه کي به د اجازت اثر نه ښکاره کیږي.اوهم په دې وجه ( چې ده په مال غیر باندې د استحقاق نه بغیر قبضه کړې ده) د عاریت واپس کول واجب شو.او عاریت د داسې شئ پشان شو.کوم چې په اخستې شوی څیزکي د کتنې نه د بائع په اجازت خپله قبضه کي اخستې وی.چه دا اگرچه د مالك په اجازت سره مقبوض دې.خو که هلاك شی.نو په ملك غیر باندې د استحقاق نه بغیر د قبضې کاوه په وجه ضامن کیږي.دغه ډول به دلته کي هم ضامن وی.

**وَلِهَذَا كَانَ وَاجِبَ الرَّدِّ** په دې وجه ددې واپس کول واجب دی. **وَصَارَ كَالْمَقْبُوضِ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ** او دا داسې شوه لکه،،مقبوض علی سوم الشراء،، ( یعنی د اخستلو په خیال یو شئ باندې قبضه کول)

**تشريح:** صاحب د عنایه او صاحب د بنایه رحمهما الله د،،هذا،، مشارالیه ،،الإذن ضروریا ،،گرځولي دې.صاحب د نتائج فرمائی.چه زما په نیز حق دادی.چه «لأنه قبض مال غيره لنفسه لا عن استحقاق» اړخ ته اشاره ده.او ددې د حق کیدلو دوې (دوه) امله دی.① یوه دا چې د «وصار كالمقبوض على سوم الشراء» عطف په «كان واجب الرد» باندې دې.او معطوف د معطوف علیه په حکم کي وی. «أي بالنظر إلى ما قبله» اوس که د هذا مشارالیه «كون الإذن ضروريا» اوگرځولي شی.نو معنی به دا وی.چه «و لكون الإذن ضروريا صار كالمقبوض على سوم الشراء» حالانکه ښکاره هم داده.چه مقبوض علی سوم الشراء کي اجازت د اړتیا په وجه نه دې.② دویمه وجه داده.چه «و الإذن ثبت ضرورة الانتفاع» د یو سوال مقدر خواب کیدلو په بناء باندې د استدلال ښه جز نه دې.په خلاف د «لأنه قبض مال غيره» چې دا د استدلال مضبوط او غوره جزء دې.نود «و هذا كان واجب الرد ، او و صار كالمقبوض على سوم الشراء» د استدلال غوره جزء باندې متفرع کیدل په زیات حق وی.ددې تائید د صاحب کافی په دې طریقې سره هم کیږي.چه موصوف د،،کون الاذن ضروریا،، والا خبره د ذکرشوو دواړو تعریفونو نه مؤخر ذکر کړې ده.

### د احنافو رحمهم الله دلیل

**وَلَنَا** زموږ دلیل دادې. **أَنَّ اللَّفْظَ لَا يُنْبِئُ عَنِ الْتِزَامِ الضَّمَانِ**؛ چې لفظ د عاریت خپل ځان باندې ضمان لازمول نه ښائی. **لِأَنَّهُ لِتَمْلِيكِ الْمَنَافِعِ بِغَيْرِ عِوَضٍ** خکه چې عاریت د عوض نه بغیرد منافعو مالك کولو، **أَوْ لِإِبَاحَتِهَا** یا ددې

**دا اباحت لپاره دي. وَالْقَبْضُ لَمْ يَقَعْ تَعَدِّيًا او قبضه كول تعدی (زياتي) نه دي واقع شوي. لِكَوْنِهِ مَأْذُونًا فِيهِ، ځکه چې قبضه کاوه کې هغه ته اجازت ورکړې شوې دي.**

**تشريح:** ددې ځائي نه د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل ذکر کوي. چه د مستعير د اړخه د ضمان د وجوب هيڅ سبب اونه موندې شو. ځکه چې سړی باندې ضمان دده د فعل نه بغير نه واجبيږي. اود مستعير د اړخه چې ښکاره کوم فعل اوموندې شو هغه عقد عاريت او قبضه ده. چه په دې کې يو هم د ضمان سبب نشي کيدلې. د عقد موجب ضمان نه کيدل ځکه دی. چه په کوم لفظ سره عقد عاريت منعقد کيږي په هغې کې د ضمان د التزام هيڅ ذکر نشته ځکه چې عقد عاريت د تبرع په طريقه د منافعو مالك جوړول، يا د منافعو مباح کول دی. (على اختلاف الاصلين) اود کوم لفظ وضع چې د منافعو د تمليك لپاره وی. هغې کې عين شي سره هيڅ تعارض نه وی. ترڅو چې ددې په ضائع کيدلو سره ضمان لازم شی. اود قبضې موجب ضمان کيدل ځکه دی. چه دغير په مال باندې د هغه د اجازت نه بغير قبضه کول د ضمان د وجوب سبب نه وی. ځکه چې دې قبضې سره خو د مال عين صيانت او حفاظت دې. نو دا دده د اړخه يو ډول له احسان دي. ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ﴾ نو اجازت سره د قبضه کولو په صورت کې به په طريقه اولی د ضمان سبب نه وی. او په دې وجه هم چې ماذون قبضه (دمالك په اجازت سره قبضه) تعدی (او زياتي) نه وی. ځکه چې دې سره د اصل مالك قبضه نه فوت کيږي. حالانکه ضمان په تعدی کولو باندې وی. قال الله تعالى ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ﴾

**وَالْإِذْنُ وَإِنْ ثَبَتَ لِأَجْلِ الْإِنْتِفَاعِ اجازت اګرچه د نفع اخستلو لپاره ثابت شوې دې. فَهُوَ مَا قَبَضَهُ إِلَّا لِلْإِنْتِفَاعِ خو ده قبضه د نفع اوچتولو لپاره کړې ده. فَلَمْ يَقَعْ تَعَدِّيًا نو دا تعدی واقع نشوه.**

**تشريح:** د امام شافعی رحمه الله د دلائلو خواب ⊙ خواب دادې. چه په دې حديثونو کې د عاريت په مضمون کيدلو باندې هيڅ دلالت نشته. ددې مقتضی خو صرف د عين واپس کاوه وجوب دې. چه په دې کې هيڅ کلام نشته. موږ هم وايو که عاريت بعينه موجود وی. نو ددې واپس کول ضروری دی. بحث خو د عين د هلاکت نه روسته د قيمت د ضمان په وجوب کې دې. «و الأداء غير الضمان في اللغة و الحكم».

**تشريح:** د امام شافعی رحمه الله د قول «و الإذن ثبت ضرورة الإنتفاع» خواب دې. چه دا منو. چه اجازت د انتفاع د اړتيا لپاره وو. خو مستعير قبضه دې لپاره کړې وه. چه ددې نه نفع اوچته کړی. نو په قبضه کې هيڅ تعدی نشته. «فلا ضمان بدونه» دا خواب په طريقه د قول بالموجب دې. خو په دې باندې مقابل دا وئيلې شی. چه کله قبضه هم د انتفاع د اړتيا په وجه شوې ده. نو د قبضې صحت به هم د اړتيا په اندازه وی. او اړتيا په حالت د استعمال کې دې. نو که د استعمال په حالت کې ضائع شی. نو يقيناً چې ضمان به لازم نه وی. خو که د استعمال د حالت نه علاوه کې ضائع شی. نو ضمان واجبيدل پکار دی. ځکه چې دې صورت کې دا د اړتيا نه سوا ضائع شوې دې. نو غوره خواب په طريقې د منع دې. ددې تقرير دادې. چه هرکله د انتفاع په حالت کې د قبضې اجازت ښکاره کاوه اړتيا واقع شو. نود حالت انتفاع نه علاوه کې به هم ښکاره کول ضروری وی. ځکه چې سړې د بل د شي نه نفع هم هغه شان اوچته وی. لکه څنګه چې د خپل ملك نه نفع اوچته وی. اودا ښکاره ده. چه انسان د خپل ملك نه شپه او ورځ بلا ناغه (مسلسل) فائده نه اخلی. بلکه په يو وخت کې نفع اخلی. بل وخت کې نه اخلی. ترڅو که د عرف او عادت (د رواج) خلاف مستعار اس باندې شپه او ورځ لګيا تار سور شو. نو ضامن به وی. معلومه شوه. چه د حالت انتفاع نه علاوه کې هم قبضه ماذون ده. «فلا يوجب الضمان» د خواب دا طريقه په غاية البيان کې صراحت سره ده. او په کافی او معراج الدرايه کې هم دې اړخ ته اشاره کړې شوې ده.

**وَإِنَّمَا وَجَبَ الرَّدُّ مُؤْنَةً اود واپس کاوه واجب کيدل د خرچې په وجه دی. كَنَفَقَةِ الْمُسْتَعَارِ فَإِنَّهَا عَلَى الْمُسْتَعِيرِ لکه د مستعار خرچ، چې دا په مستعير باندې واجب کيږي. لَا لِنَقْضِ الْقَبْضِ. د قبضې ماتولو لپاره نه دي.**



**تشريح:** د امام شافعی رحمه الله د قول «و لهذا كان واجب الرد» خواب دې. چه د واپسۍ واجبيدل، ددې په مضمون کيدلو باندې دلالت نه کوی. ځکه چې واپس کول ځکه واجب دی. چه واپس کاوه کې تکليف او خرچه راځی. دا نه چې قبضه ماته کړې شی. نو لکه څنګه چې ده قبضه کړې وو. هم هغه شان به ئې واپس راوړی. لکه څنګه چې د مستعار خرچه په ده باندې واجب ده. «بخلاف الغصب فإن الرد فيه واجب لنقض القبض لكونه بلا إذن»

**وَالْمَقْبُوضُ عَلَى سَوْمِ الشِّرَاءِ مَضْمُونٌ بِالْعَقْدِ اود اخستلو په طور باندې قبضه کې اخستې شوې شي د عقد په وجه مضمون کيږي. لِأَنَّ الْأَخْذَ فِي الْعَقْدِ لَهُ حُكْمُ الْعَقْدِ ځکه چې عقد کې اخستلو لپاره د عقد حکم وی. عَلَى مَا عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ لکه چې پخپل ځائي کې معلوم شوی دی.**

**تشريح:** د امام شافعی رحمه الله د قول «و صار كالمقبوض على سوم الشراء» خواب دې. چه کوم شي د اخستلو په طريقه قبضه کې راغی؛ هغه صرف د د قبضې په وجه مضمون نه وی. بلکه دا قبضه چونکه په طريقه د اخستلو ده. په دې وجه قيمت مقررول شرط دی. او هرکله چې د قيمت مقررولو نه روسته قبضه کړو. نود اخستلو د عقد کار پيل شو. کوم چې پخپله د اخستلو معنی کې دې. نو په ده به تاوان واجب وی.

**تنبيه** ⊙ صاحب د عنايه رحمه الله د «و المقبوض على سوم الشراء مضمون بالعقد لأن الأخذ في العقد له حكم العقد» د حل وضاحت داسې کړې دې. چه «انه ليس بمضمون بالقبض بل بالعقد لأن المأخوذ بالعقد له حكم العقد فصار كالمأخوذ بالعقد و هو يوجب الضمان» خود خواب دا تقرير په ښکاره مختل دې. ځکه چې د فصار ضمير مستتر ماخوذ بالعقد اړخ ته راجع دې. نو معنی دا شوه. «فصار المأخوذ بالعقد كالمأخوذ بالعقد» نو دڅيز تشبيه دده د ذات سره لازم شوه. چه دا باطل ده. نود عبارت د حل غوره طريقه ① يوه داده. چه لفظ د اخذ (اخستل) په معنی د تناول (او حصول) نه دې. بلکه، ،اخذ فيه، ، په معنی د، ،شرع فيه، ، ده. او معنی داده. چه «لأن الشروع في العقد بالمباشرة لبعض مقدماته له حكم نفس العقد و تمامه» ② دويمه طريقه داده. چه په، ،في العقد، ، کې لفظ د في په معنی د لام دې. لکه قول د الله تعالى ﴿قَالَتْ فَذَٰلِكُنَّ الَّذِي لُمْتُنَّنِي فِيهِ﴾ او دې حديث «إن إمرأة دخلت النار في هرة حبستها» کې دی. «على ما صرح به في مغنى اللبيب» په دې صورت کې به لفظ د، ،اخذ، ، په معنی د تناول (حاصلول) وی. او معنی به دا وی. چه «لأن المأخوذ لأجل العقد له حكم العقد».

د احنافو رحمهم الله نقلی دلائل د احنافو نقلی دليلونه دادی. ① اول دا چې قرآن کريم کې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا﴾ بې شکه الله تعالى تاسو ته فرمائی، چه اورسوئ امانتونه د امانت والا خلګ وته، ،حضرت ابن عباس، او قتاده رضي الله عنه فرمائی. چه آيت هر موتمن (امانتدار) ته عام دې. بيا په قول د حافظ ابن حجر رحمه الله آيت کې د امانت ادا کاوه حکم دې. او کله چې عين امانت هلاك شو. نو ددې واپس کول لازمی پاتې نشو. ② دوهم حديث د «عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده» چې ددې تخريج دارقطنی کړې دې. «أن رسول الله ﷺ قال لا ضمان على مؤتمن» ددې راوی محمد بن عبدالرحمن حجبی مختلف فيه دې. دارقطنی دده ته، ،متروك، ، وئيلی دی. ابن عدی وائی. «ضعيف يسرق الحديث» خو ابن حبان دې په ثقاتو کې ذکر کړې دې. او امام بخاری رحمه الله پخپل تاريخ کې دې ذکر کړې دې. او هيڅ جرح ئې نه ده کړې. حالانکه د هغوی عادت دې. چه هغوی مجروحين سره د جرح ذکر کوی. ③ دريم دا چې «عن النبي ﷺ قال ليس على المستعير غير المغل ضمان و لا على المستودع غير المغل ضمان» دا حديث وړاندې تير شوې دې. ددې راويان «عمرو بن عبد الجبار، ، او، ، عبيده بن حسان» اګرچه مختلف فيه دی. خو په بعض طرق سره بعضو ته تقويت حاصل دې. ځکه چې ددې شواهد موجود دی. کوم چې په تيرې شوو صفحو باندې تير شوی دی. ④ اثر د عمر بن الخطاب رضي الله عنه، ددې تخريج عبدالرزاق کړې دې. «قال العارية بمنزلة الوديعة لا ضمان منها إلا أن يتعدى» ددې اسناد حسن دې. ځکه چې ددې راويان «قيس بن ربيع، ، او، ، حجاج بن ارطاة» مختلف فيه دی. او پاته راويان واړه ثقات دی. ⑤ اثر د علی بن ابی طالب رضي الله عنه، ددې تخريج ابن ابی شيبه کړې دې. «قال العارية ليست بيعاً و لا

مضمونة إنما هو معروف إلا أن يخالف فيضمن﴾ دا په قول د ابن حزم د حضرت علی رضی الله عنه نه صحيح ثابت دی.دلته کي يو سوال دې.او ددې په ځواب پوهيدل ډير ضروري دي.

❓سوال*دادې.چه امام ابوداوٗد په، ،عن صفوان بن يعلى عن ابيه، ، دا روايت کړې دې.چه ﴿قال قال لی رسول الله ﷺ إذا أتتك رسلی فأعطهم ثلثين درعا و ثلثين بعيراً قال قلت يا رسول الله ﷺ عارية مضمونة او عارية مؤداة﴾اود امام نسائی روايت په يعلى ابن اميه کي دي. ﴿بل عارية مضمونة﴾ نو هم دا معلوميږی.چه عاريت مضمون وی ؟

ځواب*دادې.چه ① اول خو د صفوان د حديث په الفاظو کي اختلاف واقع دې.بعضو ضمان ذکر کړې دې.او بعضو نه دې ذکر کړې.لکه چې شريك د عبدالعزيز بن رفيع نه روايت کړې دې.او ضمان ئې ذکر کړې دې.او اسرائيل په روايت کي ددې ذکر نشته.دغه ډول جرير بن عبدالحميد چې ددې حديث په راويانو کي د ټولو نه زيات احفظ، اتقن، او اثبت دې.ددې په روايت کي هم د ضمان ذکر نشته. ② دويمه دا چې که ضمان صحيح هم وی.نود ضمان نه مراد د اداکولواو واپس کاوه ضمان دې.اود قائل د قول ﴿أنا ضامن لحاجتك﴾ د قبيلې څخه دې.يعنی ددې واپس کول زما ذمه داری ده.

ع ~ بتلك أسلى حاجته إن ضمنتها و أبرئ مما كان فى الصدر داخلاً

﴿أي إن همت بها و أرقها﴾ ③دريمه دا چې د حافظ قتاده د قول مطابق نبی کريم ﷺ د حضرت صفوان رضی الله عنه نه کومې زغرې په عاريت اخستې وې.هغه د ضمان په شرط وې.لکه چې د مسند احمد د صفوان رضی الله عنه روايت، اود مستدرك حاكم د جابر بن عبدالله رضی الله عنه الفاظ ﴿حتى تؤديها إليك﴾ په دې دلالت کوی.او که مستعير عاريت په شرط د ضمان واخلی.نود احنافو په نيز هم د يو روايت مطابق مضمون وی.لکه چې صاحب د جوهره هم په دې باندې جزم کړې دې. ﴿حيث قال إن شرط فيها الضمان كانت مضمونة بالشرط﴾ البته مذهب کي مشهور روايت هم دادې.چه عاريت په شرط د ضمان په صورت کي به شرط لغوه وی.او ضمان به واجب نه وی.ددې روايت په لحاظ به ځواب دا وی.چه حضرت صفوان رضی الله عنه دې وخت مسلمان نه وو.روسته په اسلام مشرف شوې وو.لکه چې د مسند احمد د روايت الفاظو ﴿أنا اليوم يا رسول الله ﷺ فى الإسلام أرغب﴾ اود ابوداوٗد د روايت الفاظو ﴿لأن فى قلبى اليوم ما لم يكن يومئذ﴾ کي ددې صراحت موجود دې.او د مسلمان او حربی په منځ کي هغه شرطونه جائز دی.کوم چې د مسلمانانو پخپل منځ کي جائز نه دی.

## د عاريت څيز په کرايه باندې د ورکولو بيان

(وَلَيْسَ لِلْمُسْتَعِيرِ أَنْ يُؤَاجِرَ مَا اسْتَعَارَهُ) وجائز نه دی.مستعير لپاره چې په کرايه باندې ورکړی.هغه شئ کوم چې ده په عاريت باندې اخستې دې. (فَإِنْ آجَرَهُ) که په کرايه ئې ورکړو. (فَعَطِبَ) و هلاك شو. (ضَمِنَ) نو ضامن به وی. لِأَنَّ الْإِعَارَةَ دُونَ الْإِجَارَةِ ځکه چې عاريت ورکول، د اجارې نه کم دی. وَالشَّيْءُ لَا يَتَضَمَّنُ مَا هُوَ فَوْقَهُ او شئ د ځان نه پورته ته نه متضمن کيږی. وَلِأَنَّا لَوْ صَحَّحْنَاهُ او ځکه که موږ دې ته صحيح اووايو. لَا يَصِحُّ إِلَّا لَازِمًا نو اجاره به لازم وی. لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ بِتَسْلِيطٍ مِنَ الْمُعِيرِ ځکه چې دې صورت کي به دا د معير په مسلط کاوه سره کيږی. وَفِي وُقُوعِهِ لَازِمًا زِيَادَةُ ضَرَرٍ بِالْمُعِيرِ حالانکه ددې لازم واقع کيدلو کي معير باندې زياتی ضرر دې. لِسَدِّ بَابِ الْاسْتِرْدَادِ إِلَى انْقِضَاءِ مُدَّةِ الْإِجَارَةِ ځکه چې د واپس اخستلو دروازه به بنده شی.د اجارې موده تيريدلو پورې. فَأَبْطَلْنَاهُ نو موږ دا باطل اوګرځولو. وَضَمِنَهُ حِينَ سَلَّمَهُ ابيا که ده په اجاره باندې ورکړو.نو ضامن به وی.هغه وخت کله ئې چې مستاجر ته اوسپاری. لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ تَتَنَاوَلْهُ الْعَارِيَةُ ځکه چې هرکله دې ته عاريت ګډ نشو. كَانَ غَصْبًا نودا غصب شو.

**تشريح:** مستعير د عاريت شئ عاريت باندې نشی ورکولې.ځکه چې اجاره د معاوضه کيدلو په بناء باندې د اعارې نه زيات دې.او اعاره ددې نه کمه ده.او شئ د ځان نه زيات ته نه متضمن کيږی.په دې باندې دا اشکال کيدای شی.چه هرکله مستعير د معير د اړخه دمنفعت مالك دې. نو اجاره باندې ورکول جائز کيدل پکار



دی.چه دده تصرف هم پاته پاتې شی.اود معير د واپس اخستلو حق هم منقطع نشی.بلکه د واپس اخستلو حق پاته پاتې کيدل به د اجارې د نقض عذر جوړشی.

ځواب*دعلامه مرغينانی رحمه الله قول ﴿و لأنا لو صححناه لا يصح الا لازما﴾چرته چې دوهم دليل دې.هلته د مذکوره سوال جواب هم دې.د هغې وضاحت دادې.چه د اجارې جائز کيدلو دوې (دوه) صورتونه دی. ① يا به لازم منعقد وی. ② يا به غير لازم منعقد وی.که غير لازم منعقد وی.نو قلب موضوع لازميږی.ځکه د اجارې وضع داده.چه دا لازم وی.اوکه لازم منعقد وی.نو معير ته زياتی ضرر لاحق (متعلق)کيږی.ځکه چې هغه د اجارې موده تيريدلو سره قبول واپس نشی اخستلې.هرکله چې دواړه صورتونه ناممکن دی.نو اجاره به جائز نه وی.تردې که ده د عاريت شئ اجاره باندې ورکړو.او هغه ضائع شو.نو مستعير ئې چې کله هم مستاجر ته ورسپاری.هم هغه وخت به ضامن وی.ځکه چې هرکله عاريت ورکولو کي اجاره باندې د ورکولو اختيار شامل نه دې.نوګويا مستعير هغه شئ غصب کړو.اود غصب حکم د ضمان وجوب دې.

وَإِنْ شَاءَ الْمُعِيرُ ضَمَّنَ الْمُسْتَأْجِرَ او معير که غواړی.مستاجر نه دې ضمان واخلی. لِأَنَّهُ قَبَضَهُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَالِكِ لِنَفْسِهِ ځکه چې هغه دمالك د اجازت نه بغير خپل ځان لپاره قبضه کړی دی. ثُمَّ إِنْ ضَمِنَ الْمُسْتَعِيرُ نو که هغه د مستعير نه ضمان واخستلو. لَا يَرْجِعُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ نودې د مستاجر نه واپس نشی اخستلې. لِأَنَّهُ ظَهَرَ أَنَّهُ آجَرَ مِلْكَ نَفْسِهِ ځکه دا ښکاره شوه.چه ده خپل ذاتی ملك اجاره باندې ورکړې وو. وَإِنْ ضَمِنَ الْمُسْتَأْجِرَ او که د مستاجر نه ئې ضمان واخستلو. يَرْجِعُ عَلَى الْمُؤَاجِرِ نو هغه به د موجر نه واپس اخلی. إِذَا لَمْ يَعْلَمْ أَنَّهُ كَانَ عَارِيَةً فِي يَدِهِ کله چې هغه ته دا پته نه وی.چه دا شئ دده سره عاريت دې. دَفْعًا لِضَرَرِ الْغُرُورِ د دهوکې ضرر لرې کاوه دپاره، بِخِلَافِ مَا إِذَا عَلِمَ په خلاف ددې کله چې ده ته دا پته وی.

**تشريح:** هرکله چې وجوب ضمان ثابت شو.نو اوس معير ته اختيار دې.که غواړی.مستاجر نه دې تاوان واخلی.ځکه چې هغه د مالك د اجازت نه بغير دا شئ پخپله قبضه کي اخستې دې.اوکه غواړی.مستعير نه دې تاوان واخلی.نوکه ده د مستعير نه ئې تاوان واخستلو.نو مستعير د مستاجر نه واپس نشی اخستلې.ځکه چې د مستعير په تاوان ور کاوه سره دا خبره ښکاره شوه.چه ده خپل ذاتی مملوکه شئ اجاره باندې ورکړې وو.

❓او که معير د مستاجر نه تاوان واخستلو.نو هغه به د خپل موجر يا مستعير نه واپس اخلی.په دې شرط چې اجاره باندې د اخستلو په وخت مستاجر ته دا خبره معلوم نه وی.چه دا شئ مستعير سره عاريت دې چه دده د ذات نه د دهوکې ضرر لرې شی.اوکه مستاجر ددې خبرې نه خبر وی.نو بيا مستعير نه واپس نشی اخستلې. ځکه چې مستعير هغه ته څه دهوکه نه ده ورکړې. ﴿وقالت الثلاثة لا يرجع مطلقاً لأنه غاصب ثان فيضمن بفعله﴾.

**فائده⊙** صاحب وهبانيه رحمه الله دا لس مسئلې د نظم په شکل کي ذکرکړی دی.چه په دې کي د مالك د اجازت نه بغير بل څوك مالك نشی جوړولې.که قبضه وی اوکه نه وی.

~ و مالك أمر لا يملك بدو ن أمر وكيل مستعير مؤجر

ركوباً و لبساً فيهما و مضارب و مرتهن أيضاً و قاض يؤمر

و مستودع ، مستبضع و مزارع إذا لم يكن من عنده البذر يبذر

و ما للمساقى أن يساقى غيره و إن أذن المولى له ليس ينكر

## د مستعير لپاره د عاريت څيز په عاريت باندې د ورکولو حکم

قَالَ (وَلَهُ أَنْ يُعِيرَهُ) و مستعير د عاريت شئ په عاريت باندې ورکولې شی. إِذَا كَانَ مِمَّا لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ) کله چې دا د مستعمل په بدلولو سره نه متغير کيږی. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ :امام شافعی رحمه الله فرمائی. لَيْسَ لَهُ أَنْ يُعِيرَهُ، چې ده ته د عاريت ور کاوه اختيار نشته. لِأَنَّهُ إِبَاحَةُ الْمَنَافِعِ ځکه چې عاريت خود

منافعو اباحت دي. **عَلَى مَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ**، لكه څنګه چې مونږ وړاندې بيان كړى دى. **وَالْمُبَاحُ لَهُ لَا يَمْلِكُ الْإِبَاحَةَ**، اود كوم كس لپاره چې شئ مباح كړې شى. هغه د بل لپاره د مباح كاوه نه مالك كيږي. **وَهَذَا، لِأَنَّ الْمَنَافِعَ غَيْرُ قَابِلَةٍ لِلْمِلْكِ لِكَوْنِهَا مَعْدُومَةً**، اودا ځكه چې منافع قابل د ملك نه دى. ددې د معدوم كيدلو په وجه. **وَإِنَّمَا جَعَلْنَاهَا مَوْجُودَةً فِي الْإِجَارَةِ لِلضَّرُورَةِ**. او په اجاره كې چې كوم مونږ دا موجود منلې دي. هغه د اړتيا په وجه دي. **وَقَدْ انْدَفَعَتْ بِالْإِبَاحَةِ هَاهُنَا**. او دلته اړتيا د مباح كاوه په ذريعه لرې كيږي.

**تشريح:** كوم شيان چې په اختلاف د مستعمل سره نه مختلف كيږي. يعنى په دې كې څه فرق نه راځي. لكه په خاروى باندې بوج بار كول، د غلام نه خدمت اخستل، په مځكه كې زميندارى كول، په كور كې رهائش او اوسيدل اختيارول. وغيره. نو داسې شيان مستعير بل ته په عاريت وركولې شى. امام مالك رحمه الله او په يو قول كې امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دي. د امام شافعي رحمه الله په دوهم قول كې ددې اجازت نشته. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دي. ځكه چې ددوى په نيز اعاره كې د منافعو اباحت وى. اود كوم كس لپاره چې څه شئ مباح كړې شى. هغه ته ددې شئ د بل لپاره د مباح كولو اجازت نه وى. ځكه چې منافع بالفعل د نه موجود كيدلو په وجه قابل دملك نه دى. او په اجاره كې چې كوم دا موجود منلې شوې دي. دا د ضرورت په وجه دي. او په عاريت كې دا ضرورت د مباح كولو په ذريعه ختميږي. ﴿فلا يصار إلى التمليك﴾.

**وَنَحْنُ نَقُولُ**: مونږ دا وايو. **هُوَ تَمْلِيكُ الْمَنَافِعِ** چې عقد عاريت خو د منافعو تمليك دي. **عَلَى مَا ذَكَرْنَا** لكه څنګه چې مونږ ذكر كړل. **فَيَمْلِكُ الْإِعَارَةَ** نو دې به په عاريت باندې د وركاوه مالك وى. **كَالْمُوصَى لَهُ بِالْخِدْمَةِ**، لكه هغه سړې دچا لپاره چې د خدمت وصيت كړې شوې وى. **وَالْمَنَافِعُ اعْتُبِرَتْ قَابِلَةً لِلْمِلْكِ فِي الْإِجَارَةِ** اود منافعو د ملك قابل كيدلو اعتبار كړې شوې دي. په اجاره كې به هم دغه ډول ګرځولې شى. **فَتُجْعَلُ كَذَلِكَ فِي الْإِعَارَةِ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ**، په اعاره كې د حاجت دفع كاوه دپاره،

**تشريح:** مونږ (احناف) وايو چه عقد عاريت د منافعو د تمليك نوم دې. ددې د اباحت نوم نه دې. لكه څنګه چې مونږ د ،،كتاب العاريه،، په پيل كې ذكر كړى دى. چه كله معير مستعير د عاريت د منافعو مالك جوړ كړو. نو هغه بل كس مالك جوړولې شى. ځكه چې شئ خپل مثل ته متضمن كيږي. لكه مثلاً كه يو كس د خپل غلام د خدمت زيد لپاره وصيت اوكړو. نو خدمت لپاره ئې بل چاته وركولې شى.

**د امام شافعي رحمه الله د دليل جواب** ◉ د امام شافعي رحمه الله دا وئيل چه ،، منافع بالفعل قابل د ملك نه وى ،، ددې جواب دادې چه منافع اجاره كې هم قابل د ملك نه وى. خو لكه څنګه چې هغه د ضرورت په وجه اجاره كې قابل د ملك ګرځولى شوى دى. دغه شان اعاره كې هم قابل د ملك ګرځولى شى. خو ددې جواب حاصل په اجاره باندې قياس دې. حالانكه امام شافعي رحمه الله په ﴿و قد إندفعت بالإباحة﴾ وئيلو سره د مخكې نه ددې تدارك كړې دې. نو جواب تام نشو. البته كه دا اووئيلى شى. چه لكه څنګه خلقو ته د څيزونو نه پخپله د نفع اخستلو حاجت (او ضرورت) دې. دغه شان په دې سره نورو خلقو ته د نفع رسولو حاجت هم دې. اود اجارې د اباحت په صورت كې ددوى دا دوهم ضرورت نه پوره كيږي. په دې وجه عاريت كې هم دا منافع قابل د ملك ګرځولى شوى دى.

**وَإِنَّمَا لَا تَجُوزُ فِيمَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ دَفْعًا لِمَزِيدِ الضَّرَرِ عَنِ الْمُعِيرِ**، اوهم دغه ډول د څيز عاريت وركول، كوم چې د استعمالونكى بدلولو سره متغير كيږي. ځكه نه جائز كيږي چه د معير نه ضرر لرې شى. **لِأَنَّهُ رَضِيَ بِاسْتِعْمَالِهِ** ځكه چې هغه د مستعير استعمال سره راضى شوې دې. **لَا بِاسْتِعْمَالِ غَيْرِهِ** دده د غير په استعمال سره نه دې راضى شوې.

**تشريح:** ددې ځاې نه علامه مرغينانى رحمه الله د يو سوال مقدر جواب وركوى. سوال دادې چه هر كله عاريت د منافعو د تمليك نوم دې. نو بيا د مستعمل په اختلاف او عدم اختلاف سره حكم مختلف كيدل پكار نه دى ؟



جواب حاصل د جواب دادې چه د حكم اختلاف ځكه دې چه معير ته زياتى ضرر لاحق نشى. ځكه چې هغه د مستعير په استعمال سره راضى شوې دې. خو دهغه د غير په استعمال سره نه دې راضى شوې. مثلاً زيد بكر ته خپل اس عاريت باندې ځكه وركړو. چه هغه ته د سوريدلو ښه تجربه ده. او بكر هغه خالد ته عاريت باندې وركړو. نو كه خالد هم په ښه شان سواريدلو باندې پوهيږي. نو جائز ده. ځكه چې د دواړو په استعمال سره هيڅ ضرر نشته. ګنى (كه په سوريدلو نه پوهيدلو، نو) جائز به نه وى. ځكه چې هغه په سوريدلو نه پوهيدلو په وجه اس ته نقصان رسولې شى.

## د عاريت د څلور واړه اقسامو تفصيل

**قَالَ الْعَبْدُ الضَّعِيفُ**: علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. **وَهَذَا إِذَا صَدَرَتِ الْإِعَارَةُ مُطْلَقَةً**.[1] دا هغه وخت دى. كله چې اعاره مطلقه واقع شوې وى. **وَهِيَ عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ** اودا په څلور قسمه ده. **أَحَدُهَا أَنْ تَكُونَ مُطْلَقَةً فِي الْوَقْتِ وَالِانْتِفَاعِ** يو دا چې اعاره مطلق وى. په وخت او انتفاع كې ، **وَلِلْمُسْتَعِيرِ فِيهِ** په دې صورت كې مستعير ته اختيار دې. **أَنْ يَنْتَفِعَ بِهِ أَيَّ نَوْعٍ شَاءَ فِي أَيِّ وَقْتٍ شَاءَ عَمَلًا بِالْإِطْلَاقِ**. چې ددې نه نفع واخلى. كوم ډول چې غواړي. او كوم وخت غواړي. په اطلاق باندې عمل كاوه سره، **وَالثَّانِي أَنْ تَكُونَ مُقَيَّدَةً فِيهِمَا** دوهم دا چې په وخت او انتفاع دواړو كې مقيد وى. **وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُجَاوِزَ فِيهِ مَا سَمَّاهُ عَمَلًا بِالتَّقْيِيدِ** نو په دې كې به د بيان شوى نه د زياتې كاوه اختيار نه وى. تقيد باندې عمل كاوه سره، **إِلَّا إِذَا كَانَ خِلَافًا إِلَى مِثْلِ ذَلِكَ أَوْ إِلَى خَيْرٍ مِنْهُ** خو كله چې مخالفت ددې مثل يا ددې نه غوره اړخ ته وى.

**تشريح:** د علامه مرغينانى رحمه الله په دې عبارت باندې يو اهم اشكال دې. چه دا مونږ د عبارت د تشريح نه روسته د تنبيه په عنوان سره ذكر كړې دې. اول په عبارت باندې ځان پوهه كړئ. علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى. دا هغه وخت دى. كله چې اعاره مطلقه وى. يعنى د كوم خاص وخت او په خاص طريقه د نفع اخستلو قيد نه وى. د اعارې عقلى طور باندې څلور صورتونه دى.

① **ومبې صورت اود هغې حكم** ◉ مطلقه: چې په دې كې موده او انتفاع دواړه ذكر نه وى. ددې حكم دادې چه مستعير په كومه طريقه غواړي. او كوم وخته پورې غواړي. فائده حاصلولې شى.

② **دوهم صورت اود هغې حكم** ◉ مقيده: چې په دې كې موده هم ذكر وى. او انتفاع هم مخصوص وى. ددې حكم دادې چه د معين وخت او مخصوص منفعت نه زياتې كول جائز نه دى. چه د معير په تقييد باندې عمل اوشى. كه خلاف ورزى په طرف د مثل وى. يا د معير د تقييد نه هم بهتر وى. نو جائز دې.

**تنبيه** ◉ د صاحب دهدايه رحمه الله په قول ﴿و هذا إذا صدرت﴾ كې د هذا مشاراليه څه ده؟ عامو شارحينو وئيلى دى. ﴿أي ما ذكر من ولاية الإعارة للمستعير﴾

په دې باندې دا اعتراض كيږي. چه وړاندې كوم ذكر شوې دې. هغه دادې. ﴿و له أن يعير إذا كان مما لا يختلف باختلاف المستعمل﴾ نو مطلب دا شو چه كوم شيان په اختلاف د مستعمل سره نه مختلف كيږي. هغې كې مستعير ته عاريت باندې د وركاوه اختيار هغه وخت دې. كله چې اعاره مطلقه وى. حالانكه د فقه په عامو كتابونو كې ترډې چې په متونو كې هم دا خبره صراحت سره ثابته ده. چه په اختلاف د مستعمل سره نه مختلف كيدونكى څيزونو كې عاريت باندې د وركاوه اختيار هغه وخت دې. كله چې اعاره دې قيد سره مقيد وى. هغې نه مستعير پخپله فائده واخلى. كه دا قيد نه وى. بلكه اعاره مطلقه وى. نو مستعير ته على الاطلاق د عاريت وركاوه اختيار دې. كه دا شئ په اختلاف دمستعمل سره مختلف كيږي. اوكه نه مختلف كيږي. پخپله علامه مرغينانى رحمه الله هم د مسئلې په آخر كې ددې صراحت كړې دې. ﴿حيث قال فلو إستعار دابة و

[1] اي قسمة عقلية ضرورية لأن الشيئين و هما الإطلاق و التقييد دار في الشيئين و هما الوقت و الإنتفاع فكانت أربعة لا محالة

لم يسم شيئا له أن يحمل و يعير غيره للحمل لأن الحمل لا يتفاوت و له أن يركب و يركب غيره و إن كان الركوب مختلفا﴾ نو د هذا مشاراليه کومه چې عامو شارحينو ذکرکړې ده.هغه وخت صحيح کيداې شي.کله چې تير شوی کلام ﴿إذا كان مما لا يختلف باختلاف المستعمل﴾ سره مقيد نه وی.په دې وجه حق خبره داده.که علامه مرغينانی رحمه الله خپل قول ﴿و هذا إذا صدرت الإعارة مطلقة﴾ حذف کړې وو.او داسې ئې ونيلی وو. ﴿و الإعارة على أربعة أوجه﴾ نو ډيره به غوره وه.

په دې مقام د صاحب د کافی تقرير ډير ښه دې.چه هغوی رومبی ﴿و له أن يعير﴾ ونيلو سره د امام شافعی رحمه الله اختلاف ذکر کړې دې.بيا ئې د دوارو طرفو دليل بيانولو نه روستنه ونيلی دی. ﴿ثم هذه المسئلة على وجهين إما أن حصلت الإعارة مطلقة في حق المنتفع بأن أعار ثوبا للبس و لم يبيّن اللابس او دابة للركوب و لم يبيّن الراكب أو دابة للحمل و لم يبيّن الحامل و في هذا الوجه له أن يعير سواء كان المستعار شيئا يتفاوت الناس في الإنتفاع به كاللبس في الثوب و الركوب في الدابة أو لا يتفاوتون في الإنتفاع به كالحمل على الدابة عملاً بإطلاق اللفظ و إن حصلت الإعارة مقيدة بأن إستعار ليلبس بنفسه أو ليركب بنفسه أو ليحمل بنفسه فله أن يعير فيما لا يتفاوت الناس في الإنتفاع به كما في الحمل و ليس له أن يعير فيما يتفاوت الناس في الإنتفاع به كاللبس و الركوب ثم قال و هذا هو الكلام في إعارة المستعير و أما الكلام في إنتفاعه في المستعار فهو أربعة أوجه﴾

يعنی ددې مسئلې دوې (دوه) صورتونه دی.يا به عقد اعاره د منتفع په حق کې مطلق واقع کيږی.په دې طريقه چې معير يوه کپړه د اغوستلو دپاره،يا حيوان (څاروې) د سواريدلو يا بار اوړلو لپاره عاريت ورکړو.او اغوستونکی ، او سواريدونکی او بار اوړونکی ته ئې بيان نکړل.په دې صورت کې د لفظ په اطلاق باندې د عمل کاوه په وجه مستعير بل کس ته عاريت باندې ورکولې شی.که د مستعار شيء نه په انتفاع اخستلو کې خلګ متفاوت وی.لکه اغوستل او سواريدل،او که متفاوت نه وی.لکه بار اوړل،يا به اعاره پخپله د مستعير استعمال سره مقيد وی.په دې صورت کې چې کوم شيان داسې وی.چه ددې نه په نفع اخستلو کې خلګ متفاوت نه وی.لکه بار اوړل،نو مستعير هغه هم عاريت باندې ورکولې شی.او د کومو څيزونو نه په انتفاع اخستلو کې چې خلګ متفاوت وی.لکه اغوستل، او سواريدل.نو هغه عاريت نشی ورکولې.دا تفصيل د مستعير عاريت ورکاوه په اړه کې دې.پاتې شو د مستعار شيء نه پخپله د مستعير د انتفاع اخستلو خبره، نو ددې څلور صورتونه دی.(نتائج)

وَالْحِنْطَةُ مِثْلَ الْحِنْطَةِاو غنم په مثل د غنمو دی،وَالشَّعِيْرُخَيْرٌمِنَ الْحِنْطَةِاو اوربشې غوره دی د غنمو نه،إِذَاكَانَ كَيْلًا. کله چې په کيل سره وی.)

**تشريح:** غنم په مثل د غنمو وی.مثلاً د يو سړی نه دده اس په دې قيد سره عاريت باندې واخستله.چه نن ورځ به په دې باندې لس منه غنم بارکوم.او درې کوسه( يو کوس ٣زره ګزه ا وږد وی ) لرې به ئې اوړم.او صباله ورځ به ئې خالی واپس راولم.نو هغه په دې باندې سوارلی نشی کولې.صرف بار اوړلې شی.او هغه هم صرف نن ورځ.که صباله پرې بار اوړی.نو ضامن به وی.لکه څنګه چې درې کوسه نه زيات بيولو (بوتللو) کې ضامن کيږی.اوکه دده د خپلو غنمو نه علاوه د بل چا په دغه اندازه غنم بار کړل.نودا هم جائز دی.ځکه چې غنم غنم واړه برابر دی.اوکه باجره ( کوم چې مرزانو ته ورکولې شی ) بارکړی.نودا به په درجه اولی جائز وی.ځکه چې دا د غنمو نه هم کم ضرر رسان دی.البته که د غنمو په ځائې ئې په دغه اندازه اوسپنه بار کړله.نو جائز به نه وی.ځکه چې اوسپنې سره د اس شا سوليدلې شی.

وَالثَّالِثُ اَنْ تَكُوْنَ مُقَيَّدَةً فِي حَقِّ الْوَقْتِدريم دا چې د وخت په حق کې مقيد وی.مُطْلَقَةً فِي حَقِّ الْاِنْتِفَاعِ. اود انتفاع په حق کې مطلق وی.

**تشريح:** چې موده ذکر وی.او انتفاع ذکر نه وی.

وَالرَّابِعُ عَكْسُهُڅلورم ددې عکس دې.وَلَيْسَ لَهُاو ده ته اختيار نشته.اَنْ يَتَعَدّٰي مَا سَمَّاهُ، چې دده د بيان کړې شوی نه زياتې اوکړی.فَلَوِاسْتَعَارَدَابَّةًنو که حيوان (څاروې) ئې مستعار واخستلو.وَلَمْ يُسَمِّ شَيْئًااو هيڅ شيء ئې بيان نکړو.لَهُ اَنْ يَّحْمِلَنو ده ته اختيار دې. چې خپل شيء بار کړی.وَيُعِيْرَغَيْرَهُ لِلْحَمْلِايا بل کس ته ئې د بار اوړلو لپاره عاريت باندې ورکړی.لِاَنَّ الْحَمْلَ لَايَتَفَاوَتُ. ځکه چې بار کول نه متفاوت کيږی.وَلَهُ اَنْ يَّرْكَبَاو اختيار دې.چه پخپله سور شی.وَيُرْكِبَ غَيْرَهُ وَاِنْ كَانَ الرُّكُوْبُ مُخْتَلِفًاايا بل څوك سور کړی.اګرچه سوريدل مختلف کيږی.لِاَنَّهُ لَمَّا اَطْلَقَ فِيْهِځکه چې کله دده مطلق اجازت ورکړو.فَلَهُ اَنْ يُعَيِّنَ،نو ده ته د متعين کاوه اختيار دې،حَتّٰى لَوْرَكِبَ بِنَفْسِهِتردې که پخپله سور شو.لَيْسَ لَهُ اَنْ يُرْكِبَ غَيْرَهُنو بل څوك نشی سوارولې.لِاَنَّهُ تَعَيَّنَ رُكُوْبُهُ،ځکه چې دده سواريدل متعين شو.وَلَوْاَرْكَبَ غَيْرَهُاوکه بل څوك ئې سور کړو.لَيْسَ لَهُ اَنْ يَّرْكَبَهُنو پخپله نشی سواريدلې.حَتّٰى لَوْفَعَلَهُکه داسې ئې اوکړل.ضَمِنَهُنو ضامن به وی.لِاَنَّهُ تَعَيَّنَ الْاِرْكَابُځکه چې سواريدل متعين شو.

⑫ **څلورم صورت او د هغې حکم** د دريم صورت عکس يعنی حق انتفاع مقيد وی.او حق د وخت مطلق وی.ددې حکم دادې.چه دمعير د تعيين نه تجاوز او زياتې کول جائز نه دې.نوکه يوکس اس مستعار واخستلو.او معير د نفع ډول يا وخت بيان نکړو.نو هغه ته اختيار دې.چه هغې باندې خپل شيء بار کړی.يا د بار کاوه لپاره ئې بل کس ته مستعار ورکړی.اګرچه د سواريدلو په کار کې خلګ مختلف وی.خود اطلاق په وجه چې هغه چاته غواړی،معين کولې شی.البته خپله يا د بل سوارلئ معين کاوه نه روسته ددې خلاف نشی کولې.که داسې ئې اوکړل،نو ضامن به وی.ځکه چې دده په مقرر کاوه سره مقرر شو.فخرالاسلام علی بزدوی رحمه الله هم دا اختيار کړې دې.او بعض مشائخو دا هم ونيلی دی.چه سواريدونکې به نه معين کيږی.تردې چې پخپله سواريدلو نه روسته بل څوك سوارولې شی.دغه ډول د بل کس سوارولو نه روسته پخپله سواريدلې شی.په هيڅ صورت کې به ضامن نه وی.شمس الائمه سرخسی او شيخ الاسلام خواهرزاده رحمهما الله هم دا قول اختيار کړې دې.

## د کومو څيزونو عاريت پور دې ؟

قَالَ: (وَعَارِيَةُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيْرِوَالْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ وَالْمَعْدُوْدِ پور ) د دراهمو، دنانيرو، او کيلی ، او وزنی او د عددی ( د شمار) څيزونو عاريت ورکول پور دې.

**تشريح:** دراهم او دنانير، کيلی او وزنی او عددی متقارب لکه غوزان او هګئ، دغه شان مالوچ، وړئ، کچه ريښم، او کافور وغيره شيان عاريت ورکول د پور په حکم کې دی.يعنی ګويا د معير قول د ، اقرضتك، په مرتبه کې دې.شيخ کاکی رحمه الله په حواله د شرح وجيز ذکرکړی دی. چې په دې اړه کې د هيڅ چا اختلاف معلوم نه دې.سوا ددې نه کوم چې د بعض اصحاب شافعی رحمه الله نه نقل دی.چه دا اعاره فاسده ده.نو په يوه وجه کې به ضامن وی.لکه څنګه چې اعاره صحيحه کې ضامن کيږی.او يوه وجه کې به ضامن نه وی.ځکه چې دا اعاره فاسده ده.خو په روضه کې دی. چې د غلې اعاره قطعی طور باندې اود دراهمو او دنانيرو اعاره د صحيح قول مطابق جائز نه ده.

لِاَنَّ الْاِعَارَةَ تَمْلِيْكُ الْمَنَافِعِ،ځکه چې اعاره تمليك د منافعو ده.وَلَايُمْكِنُ الْاِنْتِفَاعُ بِهَااو ددې نه انتفاع ممکن نه ده.اِلَّا بِاسْتِهْلَاكِ عَيْنِهَاخو ددې عين په کارکې راوستلواو هلاکاوه سره،فَاقْتَضٰى تَمْلِيْكُ الْعَيْنِ ضَرُوْرَةًنو دا په اړتيا د تمليك عين ته مقتضی دې.وَذٰلِكَ بِالْهِبَةِ اَوْبِالْ پور اودا خبره هبه يا پور سره ممکن ده.وَالْ پور اَدْنَاهُمَااو پور په دې کې کمتر دې.فَيَثْبُتُ. نو هم دا به ثابتيږی.

**تشريح:** د ذکرشوی څيزونو د اعارې پور کيدل ځکه دی.چه اعاره کې د منافعو تمليك کيږی. حالانکه د ذکر شوی څيزونو نه انتفاع د عين د استهلاك نه بغير کيداې هم نشی.بلکه صرف په دې طور باندې کيداې شی.چه ددې عين په کار کې راوستلو او خرچ کولو سره کړې شی.نودا عاريت د ضرورت په وجه ددې امر ته مقتضی دې.چه معير مستعير ته ددې څيزونو د عين مالك جوړ کړو.اودا خبره په دوې (دوه) خبرو سره ممکن

ده. [1] يوه داچه هغه هبه کړو. [1] دويمه دا چې پور ني ورکړو. او په دې دواړو کې کم تر پور دې. نو هم دا به ثابت وي.

أَوْلِأَنَّ مِنْ قَضِيَّةِ الْإِعَارَةِ الْإِنْتِفَاعَ وَرَدَّ الْعَيْنِ يا په دې وجه چې د اعارې د حکم څخنې دی. نفع اخستل او عين شئ واپس کول. فَأُقِيمَ رَدُّ الْمِثْلِ مَقَامَهُ. نو ددې مثل دعين قائم مقام اوګرځولی شو.

تشريح: ② د ذکرشوي څيزونو د اعارې نه د پور کيدلو دوهم دليل دادې. چه د اعارې د حکم مقتضى داده. چه مستعير د مستعار شئ نه نفع واخلي. اودا بعينه واپس کړي. اود استهلاك په وجه ددې په بعينه واپس کاوه نه دې عاجز دی. نو ددې مثل واپس کول د عين شئ واپس کاوه قائم مقام کړې شوې دې. او دغه پور دې.

صاحب د نتائج فرمائي. چه په ښکاره دا دوهم تعليل د فائدې حاصلولو نه خالي معلوميږي. ځکه چې ذکرشوي شيان عاريت ور کاوه کې د اعارې حقيقت هم منتفي دې. او ددې حکم هم منتفي دې. د اعارې د حقيقت انتفاء خو ځکه ده. چه فقهاؤ د کتاب العاريه په پيل کې ددې صراحت کړې دی. چه د اعارې په شرطونو کې يو شرط دا هم دې. چه مستعار شئ سره د بقاء د عين نه قابل د انتفاع وي. حالانکه د ذکرشوي څيزونو نه انتفاع سره د بقاء د عين ناممکن ده. نو په دې کې د اعارې حيقيقت مشکل شو. نودا د پور نه کنايه کړې شوه. اود اعارې د حکم انتفاء ځکه ده. چه ذکرشوي شيان د قابض د اړخه د تعدی نه بغير هلاکيدلو کې مضمون وي. نو هرکله چې د ذکرشوي څيزونو په عاريت کې نه د اعارې حقيقت متحقق شو. او نه ددې حکم اوموندې شو. نودا چې ونيلې شوی دی. چه ،، اعاره داده. چه د مستعار شئ نه نفع واخستلي شي. او بعينه واپس کړې شي. اودا چه،، ددې نه د عاجز کيدلو په صورت کې د مثل واپس کول د عين واپس کاوه قائم مقام ګرځولې شوې دې،، ددې هيڅ تاثير پاته پاتې نشو. البته دومره خبره ضرور ده. چه په ذکر شوي تعليل سره د عاريت او پور په منځ کې في الجمله د يو ډول مناسبت اړتيا ښکاره کيږي. چې هغه ددې قابل دې چه په زيربحث مسئله کې لفظ اعاره د پور په معنى سره کنايه يا مجاز کړې شي. خو دلته کې صرف دومره خبره کافي نه ده. بلکه د اصلي مسئلې علت کيدلو صلاحيت ثابتيدل پکار دی.

قَالُوا: مشائخو ونيلي دی. هَذَا إِذَا أَطْلَقَ الْإِعَارَةَ. چې دا هغه وخت دی. کله چې اعاره مطلق اوساتي.

تشريح: مشائخو ونيلي دی. چه د پوز په حکم کې د کيدلو حکم هغه وخت دې. کله چې اعاره مطلق وي. اوکه ددې جهت ني معين کړې وي. مثلاً دا چې زه دراهم ځکه اخلم. چه ددې په ذريعه خپله تله او خپله کانټا (ترازو، تله) ټيک کړم. يا زما د دوکان ښائست زيات شي. او خلګ ما توانګر اوګنړي. اومعاملات را سره اوکړي. نو په دې صورت کې به عاريت د پور په حکم کې نه وي. او مستعير ته به صرف د هغه منفعت اختيار وي. کوم ني چې بيان کړې دې حاصل داکه د منفعت داسې وجه ني بيان کړله. چه په هغې کې دمال عين ضائع کيدلو اړتيا نه وي. نودا به قرضه نه وي. او عين شئ واپس کول به لازم وي. په دې مقام کې يو اشکال او د هغې په ځواب پوهه شئ:

سوال: د مذکوره کلام نه معلومه شوه. چه د دراهمو وغيره عين نه انتفاع ممکن هم ده. او شرعاً معتبر هم ده. حالانکه ددې نه وړاندې ونيلې شوي وو. چه ﴿أنه لا يمكن الإنتفاع بها إلا باستهلاك عينها﴾

ځواب: وړاندې چې کوم ذکر شو. دا اکثر او اغلب باندې مبنى دی.

وَأَمَّا إِذَا عَيَّنَ الْجِهَةَ که جهت ني معين کړو. بِأَنْ اسْتَعَارَ دَرَاهِمَ په دې طريقه چې دراهم عاريت اوغواړي. لِيُعَايِرَ بِهَا مِيزَانًا چې په دې سره تله ټيک کړي. أَوْيُزَيِّنَ بِهَا دُكَّانًا يا دوکان ښائسته کړي. لَمْ يَكُنْ قَرْضًا نودا به پور نه وي. وَلَمْ يَكُنْ لَهُ إِلَّا الْمَنْفَعَةُ الْمُسَمَّاةُ. او مستعير ته به اختيار نه وي. خود بيان شوي منفعت، وَصَارَكَمَا إِذَا اسْتَعَارَ آنِيَةً يَتَجَمَّلُ بِهَا نودا داسې شوه. لکه لوښي واخلي. د زينت دپاره، أَوْسَيْفًا مُحَلًّى يا د سرو زرو توره واخلي. يَتَقَلَّدُهُ چې په غاړه کې ني اچوي.

تشريح: د ګرانمرو مطابق دا لفظ ،،يعير،، غلط دې. صحيح ،،ليعار،، دې. لکه چې په بعض نسخو کې ليعار



ذکر هم دې. مغرب کې دی. ﴿عايرت المكائيل و الموازين﴾ (معايراً و عياراً) اندازه کول او پرتال کول. هم ددې نه عيار دې. د هر شئ اندازې ته ونيلې شي.

**مستعير لپاره د عاريت په مځکه کښې د عمارت جوړولو يا وونو لګولو حکم**

قَالَ (وَإِذَا اسْتَعَارَ أَرْضًا) کله چې مستعار واخلي مځکه، لِيَبْنِيَ فِيهَا چې په دې کې عمارت جوړ کړي. أَوْ لِيَغْرِسَ فِيهَا يا په دې کې ونې (باغ) اولګوي. جَازَ نو دا جائز دی. وَلِلْمُعِيرِ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا او معير ته اختيار دې چه واپس واخلي. وَيُكَلِّفَهُ قَلْعَ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ) او مستعير ته د عمارت ورانولو، اود ونو کښ کاوه حکم اوکړي. أَمَّا الرُّجُوعُ واپس اخستل په هغه وجه دی. فَلِمَا بَيَّنَّا، کومه چې موږ بيان کړې ده. وَأَمَّا الْجَوَازُ باتې شو جائز کيدل، فَلِأَنَّهَا نو دا په دې وجه دی. مَنْفَعَةٌ مَعْلُومَةٌ چې دا هم يو معلوم منفعت دې. تُمْلَكُ بِالْإِجَارَةِ چې په ذريعه د اجارت مملوك وي. فَكَذَا بِالْإِعَارَةِ. نوهم دغه ډول به اعارې سره هم وي. وَإِذَا صَحَّ الرُّجُوعُ او هرکله چې رجوع کول صحيح شو. بَقِيَ الْمُسْتَعِيرُ شَاغِلًا أَرْضَ الْمُعِيرِ نو مستعير د معير د زمکې راګيرونکې (او استمالونکې) شو. فَيُكَلَّفُ تَفْرِيغَهَا، نو ددې د خالي کاوه حکم به کولې شي. ثُمَّ إِنْ لَمْ يَكُنْ وَقَّتَ الْعَارِيَّةَ بيا که معير د عاريت څه وخت معين کړې نه وي. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ، نو په ده به هيڅ ضمان نه وي. لِأَنَّ الْمُسْتَعِيرَ مُغْتَرٌّ غَيْرُ مَغْرُورٍ ځکه چې مستعير پخپله دهوکه شوې دې. بل چا دهوکه نه ده ورکړې. حَيْثُ اعْتَمَدَ إِطْلَاقَ الْعَقْدِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَسْبِقَ مِنْهُ الْوَعْدُ چې ده د عقد په مطلق کيدلو باندې اعتماد اوکړو. د معير د اړخه د وعدې کاوه نه بغير، وَإِنْ كَانَ وَقَّتَ الْعَارِيَّةَ اوکه هغه د عاريت څه وخت بيان کړو. وَرَجَعَ قَبْلَ الْوَقْتِ اود وخت نه وړاندې ني رجوع اوکړله. صَحَّ رُجُوعُهُ لِمَا ذَكَرْنَاهُ نو رجوع صحيح ده. په هغه وجه کومه چې موږ ذکر کړله. وَلَكِنَّهُ يُكْرَهُ خودا مکروه دی. لِمَا فِيهِ مِنْ خُلْفِ الْوَعْدِ ځکه چې دې کې وعده خلافي ده. (وَضَمِنَ الْمُعِيرُ) او معير به ضامن وي. (مَا نَقَصَ الْبِنَاءُ وَالْغَرْسُ بِالْقَلْعِ) د هغه نقصان کوم چې په عمارت غورزولو او په ونو اوښکلو سره رسيدلې دې. لِأَنَّهُ مَغْرُورٌ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې مستعير ته د معير د اړخه دهوکه ورکړې شوې ده. حَيْثُ وَقَّتَ لَهُ، چې دده لپاره ني وخت مقرر کړې دې. وَالظَّاهِرُ هُوَ الْوَفَاءُ بِالْعَهْدِ نو وعده پوره کول هم دا ښکاره دی. وَيَرْجِعُ عَلَيْهِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْ نَفْسِهِ. نو مستعير به نقصان واپس اخلي. د خپل ذات نه د ضرر دفع کاوه دپاره، كَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ فِي الْمُخْتَصَرِ. ابو الحسين قدوری رحمه الله په مختصر کې هم دغه ډول ذکر کړی دی.

تشريح: يو کس د کور جوړولو يا باغ لګولو لپاره مځکه عاريت باندې واخستله. او په دې کې ني عمارت جوړ کړو. يا باغ اولګولو. نودا جائز دی. خو معير په ده باندې ونې وغيره اوښکلې شي. او خپله مځکه واپس اخستلې شي. اوس که هغه د عاريت هيڅ وخت معين کړې نه وو. نو په دې صورت کې معير باندې د ونو اوښکلو هيڅ تاوان نه لازميږي. ځکه چې مستعير پخپله دهوکه خوړلې ده. چه د وخت د تعين نه بغير راضي شوې دې. معير دهوکه نه ده ورکړې.

سوال: په دې باندې دا اشکال کيداې شي. چه کيداې شي معير صراحت سره توقيت نه دې کړې. خو دلالتاً توقيت موجود دې. ځکه چې عمارت جوړول او ونې (باغ) لګول، وقتي (عارضي) طور باندې نه وي. بلکه د دوام په غرض به کيږي. نودا اعاره مؤقت شوه. او مستعير مغرور شو. مغتر نشو. (يعنى پخپله دهوکه شوې دې. معير دهوکه نه ده ورکړې).

ځواب: دادې. چه عمارت کله کله د لږې مودې لپاره هم جوړولې شي. لکه چې بعض وخت د يخنئ په موسم کې اوسيدلو لپاره جوړه وي. او په ګرمئ راتلو سره ني ورانه وي. دغه شان ونې (باغ) کله کله د خرڅولو لپاره لګولې شي. نود معير د اړخه دلالةً هم توقيت اونشو. نو هغه به ضامن نه وي. بيا دا حکم زموږ په نيز دې. د ابن ليلى په نيز به بناء د معير وي. او ددې د قيمت به ضامن وي.

وَذَكَرَ الْحَاكِمُ الشَّهِيدُ او حاکم شهید ذکر کړی دی. أَنَّهُ يَضْمَنُ رَبُّ الْأَرْضِ لِلْمُسْتَعِيرِ قِيمَةَ غَرْسِهِ وَبِنَائِهِ چې د زمکې مالك به مستعیر ته د هغه د ونو اود عمارت د قیمت تاوان ورکوی. وَيَكُونَانِ لَهُ، اودا دواړه شیان به د زمکې د مالك شی. إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْمُسْتَعِيرُ أَنْ يَرْفَعَهُمَا خودا که مستعیر دا اوچتول اوغواړی. وَلَا يَضْمَنُهُ قِيمَتَهُمَا اود زمکې د مالك نه ددې د قیمت تاوان وانخلی. فَيَكُونَ لَهُ ذَٰلِكَ نوده ته به دا اختیار وی. لِأَنَّهُ مِلْكُهُ ځکه چې دا دده ملك دې.

**تشريح:** ابوالفضل محمد بن محمد بن احمد بن عبدالله بن عبدالمجيد بن اسماعيل بن الحاکم مروزی حنفی مشهور حافظ حدیث او متبحر فقیه وو. د سمعانی په قول شپیته زره احادیث په ژبه باندې یاد وو. ابوعبدالله حاکم ،،صاحب مستدرك،، اود خراسان امامانو حافظانو ددوی نه حدیثونه روایت کړی دی. ددوی په لویو تصانیفو کې منتقی او کافی د امام محمد رحمه الله د کتابونو نه روسته د اصولو په طور مذهب ګڼړلې کیږی. دوی به د هر لمونځ نه روسته دا دعا کوله. «اللهم ارزقني الشهادة» دعاء ئې قبوله شوه. او د ربیع الثانی په میاشت کې سن ۳۳۴ ﻫ کې بعض خلګو څه تهمت اولګولو. او د سجدې په حالت کې ئې شهید کړو.

قَالُوا: مشائخو وئیلی دی. إِذَا كَانَ فِي الْقَلْعِ ضَرَرٌ بِالْأَرْضِ که په اوبښکلو کې د زمکې نقصان وی. فَالْخِيَارُ إِلَىٰ رَبِّ الْأَرْضِ نو اختیار به د زمکې مالك ته وی. لِأَنَّهُ صَاحِبُ أَصْلٍ ځکه چې هغه صاحب اصل دې. وَالْمُسْتَعِيرُ صَاحِبُ تَبَعٍ او مستعیر صاحب تبع ده. وَالتَّرْجِيحُ بِالْأَصْلِ، او ترجیح په اصل سره وی.

**تشريح:** مشائخو دا هم وئیلی دی. که په عمارت ماتولو او ونو اوبښکلو کې د زمکې ضرر وی. نو د زمکې مالك ته اختیار دې. چه قیمت ورکړی. اود عمارت او د ونو مالك شی. ځکه چې هغه صاحب اصل دې او مستعیر مالك تبع دې. یعنی د عمارت او ونو مالك دې. او ترجیح په ذریعه د اصل وی.

وَلَوِ اسْتَعَارَهَا لِيَزْرَعَهَا اوکه مځکه ئې ددې لپاره مستعار واخستله. چه په دې فصل اوکری. لَمْ تُؤْخَذْ مِنْهُ نو دده نه به نشی اخستلې. حَتَّىٰ يَحْصُدَ الزَّرْعَ تردې چې فصل کټ کړی. وَقَّتَ أَوْ لَمْ يُوَقِّتْ اکه وخت ئې بیان کړې وی. اوکه نه وی بیان کړې. لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُومَةً، ځکه چې ددې یوه انتهاء معلومه ده. وَفِي التَّرْكِ مُرَاعَاةُ الْحَقَّيْنِ، او په اجر مثل باندې پرېښولو کې د دواړو طرفونو دحق رعایت دې. بِخِلَافِ الْغَرْسِ، په خلاف د ونو. لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ نِهَايَةٌ مَعْلُومَةٌ چې ددې هیڅ انتهاء معلومه نه ده. فَيُقْلَعُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْمَالِكِ نودا به اوبښکلې شی. د مالك نه د ضرر لرې کاوه دپاره.

**تشريح:** اوکه مځکه ئې په دې غرض مستعار واخستله. چه په دې کې به فصل کری. نود زمکې مالك ته به د خپلې زمکې واپس اخستلو اختیار نه وی. تردې چې فصل کټ کړی. که وخت ئې مقرر کړې وی. اوکه نه وی مقرر کړې. ځکه چې د فصل کټ کاوه یوه انتهاء معلومه ده. او په اجر مثل باندې مستعیر سره پرېښولو کې د دواړو د حق رعایت دې. په خلاف د ونو. چې ددې هیڅ انتهاء معلوم نه ده. نو ددې د اوبښکلو حکم به ورکولې شی.

### د عاریت څیز د واپس کولو د مزدورۍ مسئله

قَالَ: (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَارِيَةِ عَلَى الْمُسْتَعِيرِ) اود عاریت واپس کاوه مزدوری به د مستعیر په ذمه وی. لِأَنَّ الرَّدَّ وَاجِبٌ عَلَيْهِ ځکه چې واپس کول په ده باندې واجب دی. لِمَا أَنَّهُ قَبَضَهُ لِمَنْفَعَةِ نَفْسِهِ ځکه چې ده د خپل ذاتی منفعت لپاره قبضه کړې وو. وَالْأُجْرَةُ مُؤْنَةُ الرَّدِّ اود واپس کاوه خرچه اجرت دې. فَتَكُونُ عَلَيْهِ نودا به هم په ده باندې وی. (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمُسْتَأْجَرَةِ عَلَى الْمُؤَجِّرِ) او په کرایه باندې د اخستې شوی شئ واپس کاوه مزدوری په موجر ده.



**حل اللغة:** **مؤنة** مشقت، خرچه، **تمكين** قابو (او قدرت) ورکول، **تخلية** ځانله (تنها) پرېښول، **اصطبل** د اسونو باړ **عواري**: د عاریه جمع ده، **مربط** د څاروو د تړلو ځائې، **جوهر** هرهغه کاڼړې چې د هغې نه مفید شئ اوبښکلې شی.

**تشريح:** د غوښتلې شئ واپس کولو مزدوری د مستعیر په ذمه ده. او اجاره باندې د اخستې شوی شئ واپس کولو مزدوری د موجر په ذمه ده. اود عین مغصوبه شئ واپس کولو مزدوری د غاصب په ذمه ده. د عاریت واپس کولو مزدوری د مستعیر په ذمه کیدل ځکه دی. چه مستعیر په دې باندې د خپلې ذاتی نفع لپاره قبضه کړې وه. اود واپس کولو د خرچې نوم اجرت دې. نودا اجرت به هم په ده باندې واجب وی.

لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ التَّمْكِينُ وَالتَّخْلِيَةُ ځکه چې مستاجر باندې قابو ورکول او قبضه پرېښول واجب دی. دُونَ الرَّدِّ، واپس کول نه دی. فَإِنَّ مَنْفَعَةَ قَبْضِهِ سَالِمَةٌ لِلْمُؤَجِّرِ مَعْنًى ځکه چې دده د قبضې منفعت په حقیقت کې موجر لپاره سلامت ده. فَلَا يَكُونُ عَلَيْهِ مُؤْنَةُ رَدِّهِ نو ددې دواپس کاوه خرچه به مستاجر باندې نه وی. (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمَغْصُوبَةِ عَلَى الْغَاصِبِ)؛ اود غصب کړې شوی شئ واپس کاوه خرچه په غاصب ده. لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَيْهِ الرَّدُّ وَالْإِعَادَةُ إِلَىٰ يَدِ الْمَالِكِ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ ځکه چې غاصب باندې واپس کول اود مالك په قبضه کې رسول واجب دی. د هغه نه د ضرر لرې کاوه دپاره، فَتَكُونُ مُؤْنَتُهُ عَلَيْهِ. نود واپس کاوه خرچه به هم په ده باندې وی.

**تشريح:** او په اجاره باندې داخستې شوی شئ مزدوری د موجر په ذمه کیدل ځکه دی. چه د مستاجر په ذمه عین مستاجر واپس کول واجب نه دی. بلکه صرف هم دا واجب دی. چه هغه موجر ته په دې باندې قابو ورکړی. او تخلیه اوکړی. (یعنی خپل اختیار او قابو لرې کړی) ځکه چې د مستاجر د قبضې منفعت معنوی طور باندې موجر باندې لپاره صحیح سلامت دې. یعنی دده د قبضې منفعت په حقیقت کې موجر ته رسیدلې دې. چه د مستاجر په قبضه کاوه سره موجر ته ددې کرایه ملاؤ شوه. نو د واپس کاوه خرچه د مستاجر په ذمه نشی کیدلې.

سوال: د قبضې منفعت چې لکه څنګه موجر لپاره سلامت دې. هم دغه رنګ مستاجر لپاره هم سلامت دې. ځکه چې ده د عین مستاجره نه منافع حاصل کړی دی. نود منفعت په حصول کې دواړه برابر دی؟

ځواب: په ذکرشوې قبضې سره مستاجر او موجر دواړو ته نفع اورسیدله. خود موجر منفعت زیات قوی دې. ځکه چې هغه د مال عین مالك دې. او موجر ته چې کوم منفعت حاصل شوې دې. هغه مال دې. حقیقتاً هم او حکماً هم. په خلاف د مستاجر د منفعت، چه هغه من كل وجه مال نه دې. نود موجر د منفعت اعتبار به اولی وی. لکه څنګه چې شیخ محبوبی وغیره په اجارات د جامع صغیر په متفرقو مسئلوکې دې اړخ ته اشاره کړې ده. «و فيه شئ و هو أن الأجرة لا يلزم أن تكون عيناً البتة»

قَالَ: (وَإِذَا اسْتَعَارَ دَابَّةً) کله ئې چې حیوان (څاروې) عاریت باندې واخستلو. (فَرَدَّهَا إِلَىٰ إِصْطَبْلِ مَالِكِهَا) و هغه ئې د هغې دمالك باړ (د اودریدو ځائې) ته اورسولو. (فَهَلَكَتْ) و هغه هلاك شو. (لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وی. وَهَٰذَا اسْتِحْسَانٌ، اودا استحسان دې. وَفِي الْقِيَاسِ يَضْمَنُ اقیاس کې ضامن کیدل پکار دی. لِأَنَّهُ مَا رَدَّهَا إِلَىٰ مَالِكِهَا ځکه چې ده مالك ته واپس نکړو. بَلْ ضَيَّعَهَا. بلکه ضائع ئې کړو. وَجْهُ الْاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ أَتَىٰ بِالتَّسْلِيمِ الْمُتَعَارَفِ اوجه د استحسان داده. چه هغه متعارف تسلیم کړو. لِأَنَّ رَدَّ الْعَوَارِي إِلَىٰ دَارِ الْمُلَّاكِ مُعْتَادٌ ځکه چې د عاریتونو د مالك کور ته د رسولو عام عادت دې. كَآلَةِ الْبَيْتِ، لکه د کور د استعمال شیان عاریت باندې اخستلې شی. بیا کور ته ور رسولې شی. وَلَوْ رَدَّهَا إِلَى الْمَالِكِ اوکه هغه مالك پورې رسولې وو. فَالْمَالِكُ يَرُدُّهَا إِلَى الْمَرْبِطِ نو هغه (مالك) به باړ ته رسولو نود مستعیر واپس کول صحیح شو... (وَإِنِ اسْتَعَارَ عَبْدًا) وکه غلام مستعار واخستلو. (فَرَدَّهُ إِلَىٰ دَارِ الْمَالِكِ) ود مالك کورته ئې واپس کړو. (وَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيْهِ) و مالك ته ئې اونه سپارلو. (لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وی. لِمَا بَيَّنَّا (وَلَوْ رَدَّ الْمَغْصُوبَ أَوِ الْوَدِيعَةَ إِلَىٰ دَارِ الْمَالِكِ) وکه مغصوب یا ودیعت

نې د مالك كور ته واپس كړو. وَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيْهِ او مالك ته نې اونه سپارلو. (ضَمِنَ) نو ضامن به وي. لِأَنَّ الْوَاجِبَ عَلَى الْغَاصِبِ فَسْخُ فِعْلِهِ، ځكه چې غاصب باندې خپل فعل (عمل) ماتول واجب دی. وَذٰلِكَ بِالرَّدِّ إِلَى الْمَالِكِ دُونَ غَيْرِهِ، اودا مالك ته واپس كاوه سره كيږي. الْوَدِيعَةُ لَا يَرْضَى الْمَالِكُ بِرَدِّهَا إِلَى الدَّارِ او وديعت كور ته رسولو سره به مالك نه راضي كيږي. وَلَا إِلَى يَدِ مَنْ فِي الْعِيَالِ او نه داسې سړي ته واپس كاوه سره كوم چې د هغه عيال (د كور خلګ و) كښ دي. لِأَنَّهُ لَوِ ارْتَضَاهُ لَمَا أَوْدَعَهَا إِيَّاهُ، ځكه كه هغه سره راضي كيدلو نو دده سره به ني وديعت نه ايخودلو. بِخِلَافِ الْعَوَارِي په خلاف د عاريتونو. لِأَنَّ فِيهَا عُرْفًا، چې په دې كي يو عرف (عام رواج او عادت جاري) دي. حَتَّى لَوْ كَانَتِ الْعَارِيَةُ عِقْدَ جَوْهَرٍ تردې كه عاريت د جواهرو يو هار (اميل) وي. لَمْ يَرُدَّهَا نو دا به نه واپس كوي. إِلَّا إِلَى الْمُعِيرِ مگر مالك ته (چې معير دې). لِعَدَمِ مَا ذَكَرْنَاهُ مِنَ الْعُرْفِ فِيهِ په دې كي د ذكر شوي عرف نه كيدلو په وجه.

**تشريح:** يوكس يو اس مستعار واخستلو. بيا ني دا د مالك باړته اورسولو. او هغه هلاك شو. نو د استحسان رو سره به ضامن نه وي. قياساً به ضامن وي. ځكه چې ده مالك ته واپس نكړو. بلكه ضائع ني كړو. امام شافعي ، امام احمد رحمهما الله او صحيح قول كي امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دي.

**وجه داستحسان:** داده. چه د عاريت شيان د مالك كور ته د رسولو عام عادت دې. لكه چې د كور د استعمال شيان د عاريت اخستلو نه روسته د مالك كور ته رسولې شي. نودا اس ني په متعارف طريقه اوسپارلو. اوكه دا اس ني د مالك ته رسولې وو. نو مالك به بيا هم دا باړ ته رسولو. نود مستعير واپس كول صحيح شو. شيخ تمر تاشي د ا بوسلمه نه نقل كړي دي. كه د څاروو د تړلو ځائې دكور نه بهر وي. نو مستعير به بري الذمه نه وي. ځكه دې صورت كي ښكاره هم داده. چه هلته به اس د محافظ نه بغير وي. ،، و قيل هذا عادتهم ،،

### د غلام يا نوكر په لاس د عاريت د څاروي واپس كولو مسئله

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَعَارَ دَابَّةً يو كس حيوان (څاروې) مستعار واخستلو. فَرَدَّهَا مَعَ عَبْدِهِ أَوْ أَجِيرِهِ او دا ني دخپل غلام يا نوكر په لاس واپس كړو (لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وي. وَالْمُرَادُ بِالْأَجِيرِ اجير نه مراد دادې. أَنْ يَكُونَ مُسَانَهَةً أَوْ مُشَاهَرَةً، چې كال په كال يا مياشت په مياشت نوكرئ باندې وي. لِأَنَّهَا أَمَانَةٌ، ځكه چې دا امانت دی. وَلَهُ أَنْ يَحْفَظَهَا بِيَدِ مَنْ فِي عِيَالِهِ نو دې په هغه چا باندې حفاظت كولې شي. كوم چې دده د عيال ځني وي. كَمَا فِي الْوَدِيعَةِ، لكه ځنګه چې وديعت كي كيږي. بِخِلَافِ الْأَجِيرِ مُيَاوَمَةً، په خلاف د روزانه اجير (مزدور). لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي عِيَالِهِ. ځكه چې دا دده د عيال ځني نه دي. (وَكَذَا إِذَا رَدَّهَا مَعَ عَبْدِ رَبِّ الدَّابَّةِ أَوْ أَجِيرِهِ) دغه شان كه دا ني د مالك د غلام يا نوكر په لاس واپس كړو. لِأَنَّ الْمَالِكَ يَرْضَى بِهِ، ځكه چې مالك په دې سره راضي دې. أَلَا تَرَى آيا نه ګورې، أَنَّهُ لَوْ رَدَّهُ إِلَيْهِ كه هغه ني مالك ته واپس كړي. فَهُوَ يَرُدُّهُ إِلَى عَبْدِهِ، نو مالك به ني خپل غلام ته وركوي.

**تشريح:** يوكس يو اس مستعار واخستلو. اودا ني د خپل غلام يا نوكر په لاس واپس كړو. نو هغه به ضامن نه وي. (اود امام شافعي رحمه الله دقول قياس دادې. چه ضامن به وي. لكه ځنګه چې وديعت كي كيږي) بيا د اجير نه مراد د امام احمد رحمه الله په نيز د اس سائيس (د اسونو خدمتګار) دې. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. د اجير نه مراد دادې. كوم چې د سالانه يا مياشانه مزدورئ (ماهانه نوكرئ) باندې وي. د عدم ضمان وجه داده. چه اس دده سره امانت دې. نو ده ته اختيار دې. چه په داسې كس سره حفاظت اوكړي. كوم چې دده دعيال ځني دې. لكه ځنګه چې وديعت كي كيږي. په خلاف د هغه اجير كوم چې د ورځې ورځې نوكرئ باندې وي. چه هغه دده په عيال كي نه دي.

وَقِيلَ او وئيلې شوي دي. هٰذَا فِي الْعَبْدِ الَّذِي يَقُومُ عَلَى الدَّوَابِّ، چې دا د هغه غلام په اړه كي دی. كوم چې د



څاروو ساتنه (پرورش) كوي. وَقِيلَ فِيهِ وَفِي غَيْرِهِ او وئيلې شوي دي چه په ټولو كي دا حكم دې. وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا زيات صحيح دی. لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ لَا يَدْفَعُهُ إِلَيْهِ دَائِمًا ځكه كه مالك هغه ته هميشه نه وركوي. يَدْفَعُهُ إِلَيْهِ أَحْيَانًا نو كله كله ني خو وركوي. (وَإِنْ رَدَّهَا مَعَ أَجْنَبِيٍّ) او كه د يو اجنبي (پردي) كس په لاس ني واپس كړو. (ضَمِنَ) نو ضامن به وي.

**تشريح:** بعض مشائخو وئيلي دي. چه د عدم ضمان مذكوره حكم د هغه غلام په اړه كي دي. كوم چې د اسونو پالنه كوي. يعنې سائيس اود بعضو مشائخو په نيز د هر غلام په اړه كي دا حكم دې. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا قول ثاني اصح دې ځكه كه مالك غير سائيس (چې د اسونو خدمتګار نه وي) ته هميشه نه وركوي. نو كله كله ني خو وركوي. البته كه د يو اجنبي (پردي) كس په لاس ني واپس كړو. نو ضامن به وي. ځكه چې اجنبي سړې د مالك نائب نشي جوړيدې.

وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى أَنَّ الْمُسْتَعِيرَ لَا يَمْلِكُ الْإِيدَاعَ قَصْدًا او مسئله هم په دې باندې دلالت كوي. چه مستعير قصداً وديعت نشي وركولې. كَمَا قَالَهُ بَعْضُ الْمَشَايِخِ، لكه ځنګه چې بعض مشائخو وئيلي دي وَقَالَ بَعْضُهُمْ: او بعضو وئيلي دي. يَمْلِكُهُ چې وركولې شي. لِأَنَّهُ دُونَ الْإِعَارَةِ، ځكه چې وديعت وركول د عاريت وركولو نه كم دي. وَأَوَّلُوا هٰذِهِ الْمَسْأَلَةَ بِانْتِهَاءِ الْإِعَارَةِ لِانْقِضَاءِ الْمُدَّةِ. او دوی ددې مسئلې تاويل د مودې تيريدلو نه عاريت ختميدلو سره كړې دې.

**تشريح:** كه مستعير مستعار اخستې شوې اس د يو اجنبي په لاس واپس كړو نو ضامن به وي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا مسئله په دې باندې دلالت كوي. چه مستعير ته دا اختيار نشته چه دعاريت شئ قصداً بل سره وديعت كيږدي. لكه ځنګه چې د مشائخو يو جماعت (چې هغوی كي شيخ ابوالحسن كرخي رحمه الله هم دې) هم دا فرمائيلي دي. او باقلاني رحمه الله هم دې ته اصح وئيلي دي. خو د مشائخو د عراق، فقيه ابوالليث ابوبكر، محمدبن الفضل نجاري ، اود صدرشهيد پلار برهان الائمه وغيره په نيز ددې هم اجازت دې. او امام محمد رحمه الله هم د كتاب العاريه په آخر كي دې اړخ ته اشاره كړې ده. په ظهيريه، سراجيه اوكافي كي دی. چه په دې فتوی ده. وجه داده. چه ايداع (امانت ايخودل) د اعارې نه كم تر دې. او هركله چې مستعير ته د عاريت وركاوه اختيار دې. نود وديعت وركاوه به هم اختيار وي. اوس په زيربحث مسئله كي د مشائخو په نيز تاويل دادې. چه دا په هغه صورت باندې محمول دې. كله چې د عاريت څه وخت مقرر وو. د وخت تيريدلو په وجه عاريت ختم شوې وو. چه اوس مستعير ته عاريت وركول او وديعت ايخودل هيڅ هم جائز نه دي.

قَالَ: (وَمَنْ أَعَارَ أَرْضًا بَيْضَاءَ لِلزِّرَاعَةِ) چا چه خالي مځكه عاريت وركړله. د فصل كرلو دپاره. (يَكْتُبُ إِنَّكَ أَطْعَمْتَنِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ)[1] نو اودې ليكي. چه تا ماته د خوړلو لپاره راكړې ده. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي. (يَكْتُبُ إِنَّكَ أَعَرْتَنِي)، چې دا دې اوليكي چه تا ماته عاريت راكړې ده. لِأَنَّ لَفْظَةَ الْإِعَارَةِ مَوْضُوعَةٌ لَهُ ځكه لفظ اعاره ددې لپاره موضوع شوې ده. وَالْكِتَابَةُ بِالْمَوْضُوعِ لَهُ أَوْلَى او موضوع سره ليكل غوره دی. كَمَا فِي إِعَارَةِ الدَّارِ. لكه ځنګه چې د كور په اعاره كي كيږي. وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ لَفْظَةَ الْإِطْعَامِ أَدَلُّ عَلَى الْمُرَادِ، چې لفظ د اطعام مراد باندې زيات دلالت كوي. لِأَنَّهَا تَخُصُّ الزِّرَاعَةَ ځكه چې دا كروندې سره مختص دې. وَالْإِعَارَةُ تَنْتَظِمُهَا وَغَيْرَهَا كَالْبِنَاءِ وَنَحْوِهِ او اعاره دې ته او ددې نه علاوه عمارت وغيره ته شامل

[1] القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (٣\٤٨٧) وكنز الدقائق (٣٠٧) وملتقى الأبحر (٣\٤٨٧) ومجمع الأنهر(٣\٤٨٧) وردالمحتار(٤\٥٦٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٢١)۔

ده. لَكَانَتِ الْكِتَابَةُ بِهَا أَوْلَى، نو د مختص لفظ ليكل غوره دي. بِخِلَافِ الدَّارِ په خلاف د كور، لِأَنَّهَا لَا تُعَارُ إِلَّا لِلسُّكْنَى، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ ځكه چي دا د اوسيدلو لپاره عاريت اخستي شي. والله اعلم بالصواب.

تشريح: كه يو كس خالي مځكه بل ته د كرونديږ (زميندارۍ) لپاره وركړله. نو مستعير دې په عاريت نامه كي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا اوليكي. چه «إنك اطعمتني» تا ماته دا مځكه د خوراك لپاره راكړي ده. د صاحبينو، او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به داسي ليكي. چه تا ماته عاريت راكړي ده. ځكه چه، ، اعرتني، ، مجازي لفظ نه دي. بلكه عاريت لپاره صريح موضوع دي. او موضوع لفظ سره دستاويز (عهدنامه) ليكل غوره دي. لكه څنګه چي د كور په اعاره كي بالاتفاق هم دا ليكلي كيږي. چه «إنك اعرتني» دا نه ليكلي كيږي. چه «إنك اسكنتني» دغه ډول د كېږي په اعاره كي دا نه ليكلي كيږي. چه «إنك السنتني» نو هم دغه ډول د ځمكي په اعاره كي هم صفا ليكل پكار دي. د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي. چه لفظ د اطعام مقصود باندي زيات دلالت كوي. ځكه چي دا لفظ زميندارۍ (كروندي) سره مختص دي. او د عاريت لفظ زميندارۍ وغيره ټولو ته ګډ دي. لكه عمارت جوړول وغيره. نو كوم لفظ چي زميندارۍ سره مختص دي. دهغي ليكل غوره دي په خلاف د كور، چه په دي كي اعرتني ليكل كافي شافي دي. ځكه چي كور د اوسيدلو نه علاوه د بل څه كار لپاره نشي وركولي. والله اعلم بالصواب.

## كتاب الهبة

ژباړه: (دا) كتاب د هبة (په بيان كي) دي.

تشريح: دعاريت د بيان نه روسته ئې هبه بيان كړله. ددي مناسبت دادي. چه عاريت كي د عوض نه بغير د منافعو تمليك وي. او هبه كي دعوض نه بغير سره د منفعت نه د عين شئ تمليك وي.

**د هبة شرعي حيثيت**

| |
|---|
| الْهِبَةُ عَقْدٌ مَشْرُوعٌ هبه يو مشروع عقد دي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه د نبي كريم ﷺ ارشاد دي. {تَهَادَوْا تَحَابُّوا} (١) چي خپل منځ كي هديه وركوئ. چه خپل منځ كي محبت وي. وَعَلَى ذٰلِكَ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او هم په دي اجماع منعقد ده. |

تشريح: د هبة لغوي تحقيق «فالعارية كالمفرد من الهبة» صاحب د توضيح شارح د بخاري ليكلي دي. چه لفظ د هبه د هبوب ريح نه دي. په معنى د هوا چليدلو، خودا په قول د علامه عيني رحمه الله صريح غلط دي. بلكه هبه اصل كي د ، ، وهب يهب ، ، (ض) مصدر دي. د پيل نه واو حذف كړي شوي دي. او آخر كي هاء د تانيث زياته شوي ده. لكه د ، ، وعد يعد ، ، نه عدة دي. لغت كي هبه دي ته وائي. چه بل ته داسي شئ وركړي شي. كوم چي دده لپاره نافع وي. كه مال وي. او كه غير مال وي. قال الله تعالى {فَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا} و قال الله تعالى {يَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ الذُّكُورَ} دا كله متعدي وي په لاس سره، لكه ، ، وهبة له ، ، او كله بنفسه وي. لكه «و هبتكه حكاه ابو عمرو» (قاموس) او كله من سره وي. لكه ، ، وهبة منك ، ، په ډيرو احاديثو سره دا استعمال ثابت دي. لكه چي وقائق د نووي رحمه الله كي دي.

د هبة شرعي او اصطلاحي تعريف «فقول المطرزي أنه خطاء و التفتازاني أنه من عبارة الفقهاء ظن» شرع كي هبه تمليك عين بلا عوض ته وائي.

---

١) بخاري ،، في الأدب المفرد نسائي ،، في الكنى ،، أبو يعلى ،، في المسند ،، بيهقي ،، في شعب الايمان ،، إبن عدي ،، في الكامل ،، عن أبي هريرة رضي الله عنه حاكم ،، في معرفت علوم الحديث ،، عن إبن عمر رضي الله عنه إبن القاسم ،، في الترغيب و الترهيب ،، إبن عمرو رضي الله عنه، طبراني ،، في الأوسط ،، عن عائشة رضي الله عنها، مالك ،، مرسلاً ،، عن عطاء بن عبدالله رضي الله عنه))



**ا په تعريف كښي د قيودانو فوائد** ⊛ په تمليك عين سره اباحت او عاريت اووتلو او د بلاعوض قيد سره اجاره او بيع اووتله. خودا تعريف وصيت باندي صادقيږي. په دي وجه ابن كمال د تمليك حال قيد هم زيات كړي دي. هبه كونكي ته واهب وائي. د نصر بن الحارث د خور شعر دي:

ع~ الواهب الألف لا يبغي بها بدلاً ⊛ إلا الإله و معروفاً بما إصطنعا

،، هغه داسي هزار بخښونكي دي. چه دهغي عوض نه غواړي. البته كوم چي ده د الله په لاره كي په بل باندي خوراك خوړلي دي. د خدائي د ثواب او د خلقو د ښائسته تعريف طالب دي ،،

ا چانه چي هبه كړي شي. هغه ته موهوب لـه، او كوم شئ چي هبه كړي شي. هغي ته موهوب او موهوبه وائي. ددي جمع مواهب ده. قال الشاعر~

إذا قلت عود و أعاد كل شمردل ⊛ أشم من الفتيان جزل مواهبه

،، كله چي ما هغوي ته اووئيل. چه د خير په كار كي بيا راواپس شئ. نو دوي كي هر ځوان، اوګد قد والا عزتمند ډيره وركړه كونكي راواپس كيږي ،،

**فائده** ⊛ ① عبدالله بن جداعه قيسي د نبي كريم ﷺ په خدمت كي يوه وزه د هديه په طور پيش كړله. د دي نه روسته راغي. اووې وئيل. اې د الله رسوله ﷺ! ددي بدله راكړه. هغوي د څه وركولو حكم اوفرمائيلو. هغوي په دوهم ځل بيا په دريم ځل اووئيل ، ، زدني ، ، (يعني نور هم څه راكړه). نو نبي كريم ﷺ نور هم زيات كړل. او ارشاد ئې اوفرمائيلو. چه ما اراده اوكړله. چه د قرشي ، يا انصاري ، يا ثقفي نه علاوه د هيڅ چا هبه وانخلم په دي باندي حسان بن ثابت رضي الله عنه يو شعر اووئيل. او ډير ښه ئې اووئيل.

ع~ أن الهدايا تجارات اللئام و ما ⊛ يبغي الكرام لما يهدون من ثمن

② هبه، صدقه، هديه، عطيه اګرچه واړه قريب المعاني الفاظ دي. البته صدقه او هديه په دې معنى دواړه متغاير دي. چه كوم شئ محتاج ته د تقرب الى الله په غرض وركړي شي. هغي ته صدقه وائي. او يو ځيز چا ته د هغه د تقرب او محبت په غرض وركړي شي. هغي ته هديه وائي. په دي وجه حديث د ابوهريره رضي الله عنه كي راغلي دي. «هو عليها صدقة و لنا هدية» بيا د هبي د محاسنو نه دا خبره كافي ده. چه الله تعالى خپل ذات مقدس ته د وهاب په صفت سره متصف كړي دي. {رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ الْوَهَّابِ}

| |
|---|
| (وَتَصِحُّ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ وَالْقَبْضِ) او صحيح كيږي. ايجاب او قبول او قبضې سره. أَمَّا الْإِيجَابُ وَالْقَبُولُ فَلِأَنَّهُ عَقْدٌ، بهرحال ايجاب او قبول ځكه چي دا عقد دي. وَالْعَقْدُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ، او عقد ايجاب او قبول سره منعقد كيږي. وَالْقَبْضُ لَا بُدَّ مِنْهُ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ. پاتي شوه قبضه، نودا د ملك د ثبوت لپاره ضروري ده. وَقَالَ مَالِكٌ: امام مالك رحمه الله فرمائي. يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِيهِ قَبْلَ الْقَبْضِ اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ، چي هبه كي ملك د قبضې نه وړاندي ثابتيږي. په بيع باندي قياس كاوه سره، وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الصَّدَقَةُ او هم په دي اختلاف باندي (مبني) ده صدقه. |

تشريح: كله چي د واهب د اړخه په ، ، وهبت ، نحلت ، ، وغيره الفاظو سره ايجاب وي. او د موهوب له د اړخه قبول وي. نودا هبه منعقد كيږي. ځكه هبه هم يو ډول عقد دي. او عقد ايجاب او قبول سره منعقد كيږي. او كله چي د موهوب له د اړخه مجلس كي قبضه ثابت شي. نو هبه مكمل كيږي. ځكه چي هبه كي موهوب له لپاره ملك ثابتيږي. او د ملك د ثبوت لپاره قبضه كيدل ضروري دي. ابراهيم نخعي ، سفيان ثوري ، حسن بن صالح، امام شافعي ، امام احمد ، او اكثر فقهاء او تابعين رحمهم الله ددې قائل دي. البته د امام احمد رحمه الله نه يو روايت دا هم دي. كه هبه عين شئ وي. نو د قبضه نه بغير هم صحيح كيږي. البته په مكيل او موزون كي د قبضې نه بغير نه صحيح كيږي. د امام مالك رحمه الله په نيز د قبضې نه وړاندي ملك ثابتيږي. ابوثور رحمه الله ، او په قول قديم كي امام شافعي ، او ابن ابى ليلى هم ددې قائل دي. دا حضرات دا په بيع باندي قياس كوي. چه مشتري د قبضې نه وړاندي د مبيع مالك كيږي.

ا ددې وضاحت ضروري دي. چه ركن د هبه صرف د هبه كونكي ايجاب دي. او كه د موهوب له قبلول هم ركن

دي؟ د بعضو په قول ددې په اړه کې د حنفيانو کلمات مضطرب دی. شيخ الاسلام خواهر زاده پخپله مبسوط کې وئيلي دی. چه د هبه رکن صرف د واهب ايجاب دې. د موهوب له قبلول رکن نه دې. په بدائع کې دی. چه د واهب د اړخه ايجاب کيدل رکن دې. خوه موهوب له قبلول رکن نه دې. خو استحساناً مقتضاء د قياس هم داده. چه رکن وی. هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې. دې حضراتو د مسئلې د يمين نه اخذ کړې دې. که يوکس د هبه نه کولو قسم اوخوړلو. او بيا ئې هبه کړو. خو موهوب له قبول نکړو. نو هغه حانث کيږي. اوکه د نه خرخولو قسم اوخوري. او بيا خرخ کړي. او مشتری قبول نکړي. نو نه حانث کيږي. ددې په خلاف تحفه کې دی. چه د هبه رکن ايجب او قبول دې. دغه شان کفايه کې دی. چه د هبه رکن ايجاب او قبول دې. ځکه چې د سړي ملك غير طرف ته د مالك د تمليك نه بغير نه منتقل کيږي. او غير باندې د ملك لازميدل دده د قبلولو نه بغير نه کيږي. کافي کې هم داسې دی. او صاحب د نهايه او صاحب د معراج رحمهما الله هم ددې صراحت کړې دې. پخپله د علامه مرغيناني رحمه الله قول «أما الإيجاب و القبول فلأنه عقد و العقد ينعقد بالإيجاب و القبول» هم په منزله د تصريح دې. چه عقد هبه د نورو عقدونو پشان د ايجاب او قبول نه بغير نه تماميږي. د خالد بن عدی د حديث الفاظ،، فليقبله،، او د عائشې رضی الله عنها د حديث الفاظ «كان رسول الله ﷺ يقبل الهدية و يثيب عليها» دغه شان د ابوهريره رضي الله عنه د حديث الفاظ «لو أهدى إلى ذراع لقبلت» هم په دې باندې دلالت کوی. پاتې شوه د يمين مسئله، نو اګرچه په هغې سره دليل نه قائميږي. ځکه چې د قسمونو مدار په عرف باندې دې. او عرف کې ايجاب کونکی ته واهب وئيلې شی. اګرچه موهوب له ئې قبول نکړي. په خلاف د بيع، چې په دې کې بائع هغه وخت نشی وئلې کيدې. کومه پورې چې مشتری قبول نکړي. «و لهذا يقال وهب و لم يقبل و لا يقال باع و لم يقبل».

٤ د بعضو حضراتو په نيز مذکوره اضطراب او اختلاف صرف د هبې د حقيقت په اړه کې دې په دې اړه کې هيڅ اختلاف نشته. چه موهوب له لپاره د هغه د قبول او قبضې نه بغير ملك نه ثابتيږي. لکه چې صاحب د نهايه رحمه الله د علامه مرغيناني رحمه الله قول «و تصح بالإيجاب و القبول» لاندې وئيلي دی. «أي تصح بالإيجاب وحده في حق الواهب و بالإيجاب و القبول في حق الموهوب له لأن الهبة عقد تبرع فيتم بالمتبرع فصار و هو عندنا بمنزلة الإقرار و الوصية و لكن لا يملكه الموهوب له إلا بالقبول و القبض».

فائده: د ايجاب او قبول قولاً کيدل ضروری نه دی. بلکه معاطاة (يوبل ته يوځيز ورکول) او هغه الفاظ کوم چې ايجاب او قبول باندې دلالت کوی. کافي دی. لکه چې علامه ابن عابدين رحمه الله فرمائي. «التلفظ بالإيجاب و القبول لا يشترط بل تكفي القرائن الدالة على التمليك» نو که فقير ته ئې څه شئ ورکړو. او هغه قبضه کړو. او په دوی کې يوکس هم څه لفظ او نه وئيلې. نو دا کافي ده. وجه داده. چه نبی کريم ﷺ به پخپله هديه ورکوله. د دوی په خدمت کې به هديې پيش کولې شی. او هغوی ﷺ به تقسيمولې. دغه شان ددوی اصحابو به هم داسې کول. خو دچا نه هم لفظی ايجاب او قبول منقول نه دې. نه ددې حکم نقل دې. نه يو کس ددې تعليم ورکړې دې. نو ددې نه هم دا معلوميږي. چه د ايجاب او قبول قولی کيدل ضروری نه دی.

### د احنافو رحمهم الله دليل

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ زمونږ دليل د نبی کريم ﷺ ارشاد دې. {لَا تَجُوزُ الْهِبَةُ إِلَّا مَقْبُوضَةً}(1) چې هبه جائز نه ده. مګر قبض کړې شوې. وَالْمُرَادُ نَفْيُ الْمِلْكِ، او مراد دملك نفی ده. لِأَنَّ الْجَوَازَ بِدُونِهِ ثَابِتٌ، ځکه چې جواز خو ددې نه بغير ثابت دې.

تشريح: زمونږ دليل دا ارشاد دې. «لا تجوز الهبة حتى تقبض» ددې نه مراد دادې. چه د هبه ملکيت نه ثابتيږي. ځکه چې د هبې نه جائز کيدل خود قبضې نه بغير ثابت دی. خو دا حديث غريب دې. حافظ عبدالرزاق دا د ابراهيم نخعی رحمه الله قول نقل کړې دې. په دې سلسله کې غوره استدلال د عائشه رضي الله عنها حديث دې. چه ددې تخريج امام

1) قال الزيلعي رحمه الله غريب ورواه عبدالرزاق من قول النخعي رحمه الله رواه في آخر الوصايا من مصنفه فقال أخبرنا ...عن ابراهيم قال لا تجوز الهبة حتى تقبض والصدقة تجوز قبل أن تقبض (نصب الراية ٤\٢٩٩)_



طحاوی رحمه الله په شرح اثار کې، حافظ بيهقی په سنن کې او امام مالك رحمه الله په موطا کې کړې دې «قالت ان ابا بكر الصديق رضي الله عنه كان نحلها جاد عشرين وسقاً من ماله بالغابة فلما حضرته الوفاة قال والله يا بنية ما من الناس أحب إلى غنى بعدي منك و لا أعز على فقراً بعدي منك و إني كنت نحلتك جاد عشرين وسقاً فلو كنت جددتيه و احتزتيه كان لك و إنما هو اليوم مال وارث و إنما هو أخواك و أختاك فاقتسموه على كتاب الله»،، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. چه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د شام مقام کې خپل باغ نه دې ته د کجورو ونې هبه کړې وې. چه په دې کې شل وسقه کجوری راوتلې. کله چې ددوی د وفات وخت رانيزدې شو. نو دوی اوفرمائيل. لورې! هيڅ څوك نشته. چې د هغه مالداره پاتې کيدل ماته د خان نه روسته خوښ وی. ستا نه زيات، او نه د يوکس غريب پاتې کيدل ماته د خان نه روسته ناخوښه دی. ستا نه زيات. ما تا ته د شل وسقه کجورو ونې هبه کړې وې. که تا دهغې نه کجورې کټ کړې وې. او په هغې دې قبضه کړې وه. نو هغه ستا مال جوړيدلو. اوس خو هغه واړه د وارثانو مال دې. او هغه وارثان ستا دوې (دوه) رونړه او دوې (دوه) خويندې دی. نو هغه د الله د کتاب موافق ويش کړئ،،

٤ په دې کې خط کشيده الفاظو نه بنه واضحه ده. چه هبه کې د موهوب له قبضه کول ضروری دی. د قبضې نه بغير دده ملك نه ثابتيږي.

وَلِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ، او ځکه چې هبه يو عقد تبرع ده. وَفِي إِثْبَاتِ الْمِلْكِ قَبْلَ الْقَبْضِ إِلْزَامُ الْمُتَبَرِّعِ شَيْئًا لَمْ يَتَبَرَّعْ بِهِ، او د قبضې نه وړاندې ملك ثابتولو کې احسان کونکی باندې داسې شئ لازمول دی. چه دهغې هغه احسان نه دې کړې. وَهُوَ التَّسْلِيمُ فَلَا يَصِحُّ، او هغه سپارل دی. نو دا به صحيح نه وی.

تشريح: دا د قبضې د شرط کيدلو عقلی دليل دې. چه هبه خو يوه د احسان معامله ده. اوس که د قبضې نه وړاندې موهوب له لپاره ملك ثابت کړې شی. نو واهب باندې به لازم وی. چه هغه فوراً موهوب شئ ده ته اوسپاري. حالانکه هغه ددې التزام نه دې کړې. نو واهب باندې يوه داسې خبره لازم کړې شوه. دکوم چې هغه التزام نه دې کړې. او دا موضوع د تبرعاتو خلاف ده. (په خلاف د معاوضاتو) په کافی او بعض شروحاتو کې هم دغه ډول ذکر دی. دلته کې يو سوال اود هغې په ځواب پوهيدل ډير ضروری دی.

٤ سوال: کله چې واهب څه شئ هبه کړو. نو هغه د تسليم (سپارلو) التزام هم اوکړو. لکه مثلاً يوکس نفل پيل کړي. نو په ده باندې ددې پوره کول لازميږي. نو سپارل دده په التزام سره لازم شو؟

ځواب: په عين شئ کې د مالك حق ملك مال هم دې. او ملك يد هم دې. ځکه چې ملك يد هم مقصود دې. تردې چې غاصب لکه څنګه چې د اصل شئ په غصب کاوه سره ضامن کيږي. دغه ډول د قبضې غصب کاوه سره هم ضامن کيږي. لکه اوګورئ. که يوکس مدبر غلام غصب کړي. نو هغه ضامن کيږي. حالانکه کتابت کې هم صرف ازاله د يد وی. نو هرکله چې ملك مال او ملك يد دواړه پخپله مقصود شو. نو په دې کې د يو په التزام سره د دوهم التزام کول نه لازميږي. په خلاف د نفل پيل کولو، چه کومه برخه ئې اداکړله. د هغې صيانت او ساتنه واجب دی،، و ذالك بالإتمام،،

بِخِلَافِ الْوَصِيَّةِ، په خلاف د وصيت، لِأَنَّ أَوَانَ ثُبُوتِ الْمِلْكِ فِيهَا بَعْدَ الْمَوْتِ، ځکه چې دې کې د ملك د ثبوت وخت دمرګ نه روسته دې. وَلَا إِلْزَامَ عَلَى الْمُتَبَرِّعِ لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ اللُّزُومِ، او احسان کونکی باندې هيڅ شئ لازمول پکار نه دی. د لزوم اهليت نه کيدلو په وجه.

تشريح: د امام مالك رحمه الله د مسلك ځواب دې. چه امام مالك رحمه الله هبه د قبض په عدم اشتراط کې وصيت باندې قياس کړې ده. چه وصيت کې د قبضې نه بغير ملك ثابتيږي. علامه مرغيناني رحمه الله ددې ځواب ورکوی. چه دې دواړو کې توپير دې. او هغه داچه وصيت کې دملك ثبوت د موصی د مرګ نه روسته وی. نو په دې کې متبرع باندې هيڅ الزام نشته. ځکه چې په وجه د مرګ په ده کې دا لياقت پاتې نشو.

وَحَقُّ الْوَارِثِ مُتَأَخِّرٌ عَنِ الْوَصِيَّةِ او د وارث حق د وصيت نه موخر دې. فَلَمْ يَمْلِكْهَا نو وارث د وصيت د مال مالك نشو.

**تشريح:** ددې ځائې نه علامه مرغيناني رحمه الله د يو سوال ځواب ورکول غواړي.سوال دادې،چه د مرګ په وجه موصى کې د څه شي د لزوم اهليت پاتې نشو.نو ټيك ده.خود وصيت کونکي په ملك کې وارث ددې قائم مقام دې.نود موصى له د ملکيت د وصيت شي وارث ته سپارلو پورې موقوف پاتې کيدل پکار دى.ځکه چې د هبې پشان وصيت هم عقد تبرع ده؟

ځواب:د ځواب حاصل دادې،چه د وارث حق د وصيت نه موځر دې.نو هغه په مال د وصيت کې د موصى خليفه نشو. ﴿فلا معتبر بتسليمه لأنه لم يملكها و لا قام مقام المالك فيها﴾

**په مجلس کښې د واهب د اجازت نه بغير د موهوب له د قبضه کولو حکم**

> **قَالَ:** فرمائى. (وَإِنْ قَبَضَهَا الْمَوْهُوبُ لَهُ فِي الْمَجْلِسِ بِغَيْرِ أَمْرِ الْوَاهِبِ) نو که قبضه کړو.موهوب له په مجلس کې،د واهب د اجازت نه بغير، (جَازَ) اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دى. (وَإِنْ قَبَضَ بَعْدَ الِافْتِرَاقِ) وکه د جلا کيدلو نه روسته ئې قبضه کړو. (لَمْ يَجُزْ) نو جائز نه ده. (إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ الْوَاهِبُ فِي الْقَبْضِ) خودا چې اجازت ورکړې وى.ده نه واهب د قبضه کولو،

**تشريح:** که موهوب له د مالك د حکم نه بغير په مال موهوب باندې هم په دې مجلس کې قبضه اوکړله.په کوم کې چې د هبه عقد اوشو.نودا استحساناً جائز دى.اوکه د هبې د مجلس نه دجدا کيدلو نه روسته ئې قبضه اوکړله.نو جائز نه دى.خو هغه وخت کله چې واهب ده ته اجازت ورکړى.

> وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ فِي الْوَجْهَيْنِ او قياس دادې.چه جائز نه وى.دواړو صورتونو کې ، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ،او هم دا قول دې.د امام شافعي ،

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائى.چه د قياس تقاضا هم داده.چه دواړو صورتونو کې جائز نه وى.يعنى د واهب د اجازت نه بغير چې کومه قبضه ده کړې ده.که هغه په مجلس د عقد کې وى.ياد مجلس نه د جداکيدلو نه روسته وى.په دواړو صورتونو کې جائز کيدل پکار نه دى.امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.

> لِأَنَّ الْقَبْضَ تَصَرُّفٌ فِي مِلْكِ الْوَاهِبِ،ځکه چې قبضه کول د واهب په ملك کې تصرف دې. إِذْ مِلْكُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ بَاقٍ ځکه چې د قبضې نه وړاندې دده ملك پاته دې. فَلَا يَصِحُّ بِدُونِ إِذْنِهِ، نو دده د اجازت نه بغير به صحيح نه وى.

**تشريح** دليل دادې،چه موهوب شي باندې قبضه کول، د واهب په ملك کې تصرف دې.ځکه چې د قبضې نه وړاندې د واهب ملك بالاتفاق پاته دې.په دې دليل که هغه د بيع او اعتاق وغيره څه تصرف اوکړى.نو دده تصرف صحيح دې.او هرکله چې د واهب ملك پاته دې.نو دده داجازت نه بغير قبضه کول به صحيح نه وى.ځکه چې دغير په ملك کې دمالك د اجازت نه بغير تصرف کول نه صحيح کيږى.خو په دې باندې ددې وئيلو ګنجائش شته.چه اجازت په دوې (دوه) قسمه وى.يو صراحتاً کوم چې دلته کې اونه موندې شو.او يو دلالةً کوم چې دلته کې موجود دې.ځکه چې هرکله واهب دې د قبضې نه منع نکړو.نودا دلالةً اجازت دې.نودا کافي کيدل پکار دى ؟

> وَلَنَا زموږ دليل دادې. أَنَّ الْقَبْضَ بِمَنْزِلَةِ الْقَبُولِ فِي الْهِبَةِ چې هبه کې قبضه په منزله د قبول ده. مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ يَتَوَقَّفُ عَلَيْهِ ثُبُوتُ حُكْمِهِ وَهُوَ الْمِلْكُ،په دې حيثيت چې د هبه حکم يعنى ملك په دې موقوف دې.

**تشريح:** زموږ دليل دادې.چه لکه څنګه بيع کې قبول وى.دغه ډول هبه کې قبضه وى.په دې حيثيت چې دهبه حکم يعنى د ملك ثبوت قبضه باندې موقوف ده.حالانکه د هبې نه د واهب مقصد هم دادې.چه د موهوب له ملکيت ثابت کړى.نود واهب د اړخه ايجاب کيدل،ګويا قبضه باندې مسلط کول شو.چه ددې مقصود حاصل شى.،، فكان إذناً د لالةً،،



① اعتراض:صاحب دغاية البيان وئيلي دى.چه دلته کې علامه مرغيناني رحمه الله له د،، ولنا،، په ځائې،،وجه الاستحسان،، وئيل پکار وو.ځکه چې موصوف وړاندې قياس او استحسان ذکر کړې دې.او په متن کې د مقابل قول نه ذکر شوې؟

ځواب:د علامه عيني رحمه الله په قول ځواب دادې،چه کوم مقتضاء د قياس دې.هغه چونکه د امام شافعي رحمه الله قول دې.اوکومه چې وجه د استحسان ده.هغه زموږ قول دې.نو په دې لحاظ سره،، ولنا،، وئيل مناسب دى. ﴿و إن لم يصرح بذكر الشافعي رحمه الله﴾

② اعتراض:دوهم اعتراض مذکوره دليل باندې دې.که په هبه کې قبضه هم دغه ډول وه.لکه څنګه چې بيع کې قبليږى.نود مجلس نه د جلا کيدلو نه روسته د واهب موهوب له ته د قبضه کاوه حکم به صحيح نه وو.لکه څنګه چې د بيع په صورت کې د مجلس نه د جلا کيدلو نه روسته د بائع مشترى ته د قبلولو حکم کول نه صحيح کيږى ؟

ځواب:دادې.چه د بائع د اړخه ايجاب کيدل د عقد جزء (اويوه حصه) ده.چه دا د مجلس نه په علاوه باندې موقوف نه دى.هم دا وجه ده.که يوکس د نه خرڅولو قسم اوخوړلو.بيا ئې خرڅ کړو.او مشترى قبول نکړو.نو بائع نه حانث کيږى.پاتې شو د واهب د اړخه ايجاب، نودا مکمل عقد دې.ځکه چې دا يو تبرع (احسان) ده.چه دا صرف متبرع (احسان کونکى) سره تماميږى.خو قبضې سره.نو کله چې ايجاب او قبول اوموندې شى.نودا په ما وراء د مجلس باندې موقوف کيداى شى.چه ددې شرط يعنى قبضه اوموندې شى. ﴿فيصح الأمر بالقبض و قبضه و قبضه بعد المجلس﴾ دا سوال او ځواب په عامو شرحو کې ذکر دى.چه دا صاحب د نهايه او صاحب د معراج رحمهما الله مختلفاتو اړخ ته منسوب کړى دى.

بيا په دې اعتراض باندې سعدى چلپى په دوې (دوه) وجو سره اعتراض کړې دې.① رومبى دا چې مذکوره ځواب صحيح وى.نود مجلس نه روسته د واهب حکم سره قبلول جائز کيدل پکار دى.حالانکه دا باطل دى ؟ ② دوهم دا چې دا کلام د هغې مناقض دې.کوم چې علامه مرغيناني رحمه الله محکي کړې دې. ﴿أنه عقد و العقد ينعقد بالإيجاب و القبول﴾

صاحب دنتائج رحمه الله فرمائى.د رومبى اعتراض ځواب دادې.که څوك سړې دا اووائى.چه ما تاته دا شي هبه کړو.او موهوب له د قبلولو نه بغير په دې باندې قبضه اوکړى.نودا صحيح ده.چه ددې صراحت په تبيين الحقائق کې موجود دې.اودا په ذخيره کې هم ذکر دى.نو هرکله چې عقد هبه د قبلولو نه بغير صحيح ده.نو د واهب په حکم سره د مجلس نه روسته د قبلولو په صورت کې به په طريقه اولى صحيح وى.،، فبطلان التالي ممنوع،، د دوهم اعتراض ځواب دادې،چه وړاندې هم د بدائع په حواله سره تير شو.چه د هبه رکن د واهب ايجاب دې.پاتې شو د موهوب له د اړخه قبليدل.نودا استحساناً رکن نه دې.او قياساً رکن دې.نود ذکرى شوى مدار احسان باندې دې.اود علامه مرغيناني رحمه الله د ذکرشوى کلام مدار په قياس باندې دې.،،فلا تناقض بينهما،،

**قوله: بمنزلة القبول فى الهبة** علامه کاکى ، علامه بدرالدين، او صاحب د نهايه رحمهم الله وغيره شارحينو وئيلي دى.چه لفظ،،فى الهبة،، د،، القبض،، سره متعلق دې.،، القبول،، سره نه دې.نو معنى دا شوه. ﴿أن القبض فى الهبة بمنزلة القبول فى البيع من حيث أن الحكم و هو الملك يتوقف عليه فى الهبة كما يتوقف على القبول فى البيع﴾،، يعنى هبه کې قبضه داسې ده.لکه بيع کې قبول،په دې طريقه چې هبه کې ددې حکم يعنى ملك قبضه باندې موقوف دې.لکه څنګه چې بيع کې ددې حکم قبلولو باندې موقوف وى ،، په مبسوط کې ددې معنى صراحت دې.

> وَالْمَقْصُودُ مِنْهُ إِثْبَاتُ الْمِلْكِ او ددې نه مقصود هم ملك ثابتول دى. فَيَكُونُ الْإِيجَابُ مِنْهُ تَسْلِيطًا عَلَى الْقَبْضِ،نو دده د اړخه ايجاب کول، قبضه باندې مسلط کول شو.

**تشريح:** يعنى د عقد هبه نه د واهب مقصد هم دادې.چه موهوب له لپاره ملك ثابت کړى.او هرکله چې دده

مقصد هم دادې.نو دده د اړخه ايجاب كيدل قبضه كاوه باندې مسلط كول شو.نودا دلالة اجازت شو.

سوال: په دې باندې دا اشكال كيږي.چه عقد بيع سره د بائع مقصد هم دا وي.چه مشتري لپاره ملك ثابت شي.ددې باوجود بيع كې كله چې ايجاب او قبول اوشي.او مبيع مخې ته موجود وي.نود بائع ايجاب قبضه باندې مسلط كول نه ګرځولې كيږي.تردې كه مشتري دقيمت ور كاوه نه وړاندې د بائع د اجازت نه بغير مبيع باندې قبضه اوكړي.نو بائع دده نه واپس اخستې شي.او منع كولې شي.تردې چې قيمت وصول كړي ؟

ځواب: دادې،چه د عقد بيع نه كوم مقصد معترض بيان كړې دې.اول خودا صحيح نه دې.ځكه چې د بائع قيمت خو صرف قيمت حاصلول دي.پاتې شو مشتري لپاره د ملك ثابتيدل،نودا يو ضمني امر دې.چه ددې به هيڅ اعتبار نشي كولې.اوكه د بائع مقصد هم دا اومنلې شي.كوم چې معترض ذكركړې دې.يعني مشتري لپاره ملك ثابتول،نو مقصد خو قبضه باندې د موقوف كيدلو نه بغير صرف دمشتري قبلولو سره حاصليږي. ځكه چې د مشتري د ملك ثبوت لپاره قبضه شرط نه ده.نو د بائع ايجاب مسلط كول ګنړلو هيڅ اړتيا پاتې نشو.په خلاف د هبه، چې په دې كې موهوب له لپاره د ملك ثبوت قبضه كيدلو سره مشروط ده.

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَبَضَ بَعْدَ الِافْتِرَاقِ،په خلاف ددې كله چې د جلا كيدلو نه روسته قبضه اوكړي.لِأَنَّا إِنَّمَا أَثْبَتْنَا التَّسْلِيطَ فِيهِ إِلْحَاقًا لَهُ بِالْقَبُولِ،ځكه چې هبه كې قبضه باندې كوم مسلط كول موږ ثابت كړي.هغه موږ د قبضې قبلولو سره په لاحق كاوه كړې دى.وَالْقَبُولُ يَتَقَيَّدُ بِالْمَجْلِسِ،او قبلول مجلس سره مقيد دى.فَكَذَا مَا يَلْحَقُ بِهِ،نو هم دغه ډول به هغه هم مقيد وي.كوم چې دې سره لاحق كړې شوې دې.

تشريح: په خلاف ددې صورت كله چې موهوب له د مجلس نه د جلا كيدلو نه روسته قبضه اوكړله.چه دا جائز نه ده.بلكه دده لپاره صريح اجازت كيدل شرط دى.ځكه چې هبه كې قبضه باندې كوم مسلط كول ثابت كړې شوى دى.هغه د بيع قبلولو سره د قبضې لاحق كاوه په طور باندې شوى دى.اود بيع قبلولو جواز مجلس پورې محدود دې.نو كوم شئ چې قبول سره ملحق كړې شوې دې.يعني د هبه قبضه، هغه به هم مجلس پورې محدود وي.نو لكه څنګه چې د بيع په مجلس كې قبلولو سره ملك ثابتيږي.دغه ډول به هبه كې هم قبضه سره ملك ثابتيږي.او لكه څنګه چې د بيع قبلولو اختيار صرف د بيع مجلس پورې وي.دغه ډول د هبه د قبضې اختيار به هم د هبه مجلس پورې وي.د مجلس نه د جلا كيدلو نه روسته به ددې اختيار نه وي.

بِخِلَافِ مَا إِذَا نَهَاهُ عَنِ الْقَبْضِ فِي الْمَجْلِسِ،په خلاف ددې كله چې واهب ده لره په مجلس كې د قبضه كاوه نه منع كړې وي.لِأَنَّ الدَّلَالَةَ لَا تَعْمَلُ فِي مُقَابَلَةِ الصَّرِيحِ،ځكه چې صريحى دلالت د صريح په مقابله كې عمل نه كوي.

تشريح: ددې عطف په «بخلاف ما إذا قبض بعد الإفتراق» باندې دې.نو په حرف واؤ سره «و بخلاف ما إذا نهاه» وئيل پكار دى.بيا دا قول د يو سوال مقدر ځواب دې.

سوال: دادې.چه د مذكوره تقرير مطابق كه واهب موهوب له د قبضې نه منع كړي.بيا هم قبضه جائز كيدل پكار دى.ځكه چې مسلط كول خو دلته كې هم موجود دى.حالانكه په دې صورت كې قبضه جائز نه ده؟

جواب: حاصل د ځواب دادې.چه د موهوب له قبضه قبول سره لاحق كول د دلالت په طريقه دى.يعني د واهب په فعل سره دا دليل راوځي.چه ده د قبضې اجازت وركړې دې.او هركله چې ده صراحت سره منع كړو.نو دلالت بې اثره شو.ځكه چې د صريح په مقابله كې دلالت هيڅ كار نه كوي.

### په كومو الفاظو سره هبه منعقد كيږي؟

قَالَ: (وَتَنْعَقِدُ الْهِبَةُ بِقَوْلِهِ وَهَبْتُ وَنَحَلْتُ وَأَعْطَيْتُ)او هبه په دې وئيلو سره منعقد كيږي.چه ما[1] هبه كړو،[2] دركړو،[3] عطاء كړو.لِأَنَّ الْأَوَّلَ صَرِيحٌ فِيهِ،ځكه چې ړومبې لفظ خو په دې كې صريح دې.وَالثَّانِي مُسْتَعْمَلٌ فِيهِ.



او دوهم مستعمل دې.

تشريح: په كومو الفاظو چې هبه منعقد كيږي.هغه دا دى،،وهبتُ، نحلتُ، اعطيتُ،،په دې كې ړومبې لفظ يعنى ،،وهبتُ،،د هبه په معنى كې صريح دې.او دوهم لفظ يعنى ،،نحلتُ،،په دې معنى كې مجازاً استعماليږي.لكه چې دنبى كريمﷺ ارشاد دې. «أكل أولادك نحلت»

قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ،نبى كريمﷺ ارشاد اوفرمائيلو،،{أَكُلَّ أَوْلَادِكَ نَحَلْتَ مِثْلَ هَذَا؟}[1] آيا تا هر اولاد ته ددې مثل وركړې دې،،وَكَذَلِكَ الثَّالِثُ،اوهم دغه ډول دريم لفظ دې.يُقَالُ:لكه وئيلې شي.أَعْطَاكَ اللَّهُ وَوَهَبَكَ اللَّهُ مَعْنًى وَاحِدٍ،چه،،دعطاك الله،،او،،و هبك الله،،په يوشان معنى كې.(وَكَذَا تَنْعَقِدُ بِقَوْلِهِ)و هم دغه ډول منعقد كيږي په دې وئيلو سره.أَطْعَمْتُكَ هَذَا الطَّعَامَ[4] چې اوخوړلو ما په تا باندې دا خوراك،وَجَعَلْتُ هَذَا الثَّوْبَ لَكَ و[5] دا كپړه ما هم ستا كړله،وَأَعْمَرْتُكَ هَذَا الشَّيْءَ و[6] د واړه عمر لپاره دا شئ ما تاته دركړو.وَحَمَلْتُكَ عَلَى هَذِهِ الدَّابَّةِ و[7] ته مې په دې سوارلئ باندې سور كړې.إِذَا نَوَى بِالْحُمْلَانِ الْهِبَةَ) كله نې چې نيت كړې وي.پوره سوړولو سره د هبه كولو،

تشريح: ددې حديث تخريج ائمه سته د حضرت نعمان بن بشيرؓ نه په مختلفو الفاظو سره كړې دې.د صحيح بخارى الفاظ دادى.(عن النعمان بن بشيرؓ أن أباه أتى به رسول اللهﷺ فقال انى نحلت إبنى هذا غلاماً فقال أكل ولدك نحلت مثله ؟ قال لا قال فارجعه)،،د حضرت نعمان بن بشيرؓ نه روايت دې. چې ددوى پلار دوى د ځان سره د نبى كريمﷺ په خدمت كې بوتلل.او عرض نې اوكړو.چه ما خپل دې خوى ته غلام وركړې دې.نبى كريمﷺ اوفرمائيل.آيا تا خپل هر خوى ته داسې وركړې دې؟ هغوى عرض اوكړله نه،نو نبى كريمﷺ اوفرمائيل.دا واپس واخله،،

أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ الْإِطْعَامَ إِذَا أُضِيفَ إِلَى مَا يُطْعَمُ عَيْنُهُ اول يعنى خوراك ځكه چې كله د اطعام اضافت هغه شئ اړخ ته اوشي.كوم چې بعينه خوړلې كيږي.يُرَادُ بِهِ تَمْلِيكُ الْعَيْنِ،نو هغې سره تمليك د عين مراد كيږي.بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ:په خلاف ددې كله چې اووائى.أَطْعَمْتُكَ هَذِهِ الْأَرْضَ حَيْثُ تَكُونُ عَارِيَةً؛ چې ما تا باندې دا مځكه اوخوړله.چه دا به عاريت وي.لِأَنَّ عَيْنَهَا لَا تُطْعَمُ ځكه چې مځكه بعينه نه خوړلې كيږي.فَيَكُونُ الْمُرَادُ أَكْلَ غَلَّتِهَا نو ددې پيداوار خوړل به مراد وي.وَأَمَّا الثَّانِي او دوهم يعنى .د كپړې لفظ.فَلِأَنَّ حَرْفَ اللَّامِ لِلتَّمْلِيكِ نودا ځكه حرف لام د تمليك لپاره دې.

تشريح: په لفظ د «أطعمتك هذا الطعام» سره د هبې د انعقاد وجه داده.چه د لفظ ،،اطعام،، نسبت كله داسې شئ اړخ ته وي.كوم چې پخپله خوړلې كيږي.لكه غله، غنم، كجورې، ډوډئ وغيره، نو په دې سره دعين شئ تمليك مراد وي.نو مطلب دا شو.چه ما ته ددې شئ مالك كړې.او دې ته هبه وائى.ددې په خلاف كه داسې شئ اړخ ته نسبت وي.كوم چې پخپله نه خوړلې كيږي.لكه مځكه ، نو په دې صورت كې د اطعام معنى عاريت وي.او مطلب به دا وي.چه ما تا ته دا مځكه ددې لپاره دركړه.چه ته په دې كې فصل اوكړې.او غله حاصله كړې.او هغه ستا په كار راشي.يعنى عاريه مې دركړله.په دې باندې شيخ انزارى رحمه الله په غاية البيان كې اعتراض كړې دې.

اعتراض: دادې.چه د صاحب هدايه رحمه الله په دې تفصيل كې اعتراض دې.ځكه چې ددې تفصيل په موجب د كفارې په آيت ﴿إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ﴾ كې د اطعام نه مراد تمليك وي.اباحت به نه وي.لكه څنګه چې د بعض عالمانو قول دې.ځكه چې د اطعام نه مراد په بل طعام خوړل دى.او طعام پخپله خوړلې كيږي ؟

ځواب: دادې.چه،، اضافت الى مايطعم عينه،، سره د علامه مرغينانى رحمه الله مراد دادې.چه داسې شئ ذكر

---

1) من حديث نعمان بن بشيرؓ أخرجه البخارى فى الهبة باب ١٢ ومسلم فى الهبات رقم ٩ والترمذى فى الأحكام باب ٣٠ والنسائى فى النحل باب ١ وابن ماجه فى الهبة باب ١ ومالک فى الأقضية رقم ٣٩ وأحمد فى المسند (٢٦٨١٤)

كړي.كوم چي بعينه خوړلي كيږي.اودا د اطعام مفعول ثاني اوګرځولي شي.لكه چي فقهاؤ ددي هم دا قاعده بيان كړي ده.چه كله مفعول ثاني ذكر وي.نو د تمليك لپاره به وي.ګني اباحت لپاره به وي.او آيت كي داسي نه ده.په دي وجه دي كي لفظ اطعام پخپل اصل وضع يعني اباحت باندي پاته پاتي شو.

وَأَمَّا الثَّالِثُ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او دريم لفظ د نبي كريمﷺ د ارشاد په وجه، {فَمَنْ أَعْمَرَ عُمْرَى چي چا عمرى وركړله فَهِيَ لِلْمُعْمَرِ لَهُ نو هغه دمعمرله لپاره ده. وَلِوَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ}(۱) او دهغه نه روسته د هغه وارثانو دپاره، وَكَذَا إِذَا قَالَ دغه ډول كله ئي چي دا اوونيل جَعَلْتُ هَذِهِ الدَّارَ لَكَ عُمْرَى لِمَا قُلْنَا. چي ما دا كور ستا لپاره عمرى كړو.(يعني واړه عمر لپاره مي دركړو).

**تشريح:** دريم لفظ يعني «اعمرتك هذا الشئ» ونيلو سره هم هبه منعقد كيږي.ځكه چي حديث «فمن أعمر عمرى فهي للمعمر لـه» كي چي كله دا عمرى معمرله لپاره اوګرځولي شوه.نود دوهم لفظ پشان دا معنى شوه.چه د هغه ملك ئي كړو.او هم دا هبه ده.دغه ډول كه ده اوونيل «جعلت هذه الدار لـك عـمرى» بيا هم د پورتني حديث په وجه هبه شوه.

**قوله فمن اعمر** ددي حديث تخريج د امام بخاري رحمه الله نه علاوه ائمه خمسه د حضرت جابر رضي الله عنه نه كړي دي. «قال رسول اللهﷺ من أعمر رجلاً عمرى له و لعقبه فقد قطع قوله حقه فيهـا و هـي لمـن أعمـر و لعقبـه»، نبي كريمﷺ ارشاد اوفرمائيلو.ځوك چي يوكس لپاره عمرى اوكړي.اود هغه د وارثانو دپاره،نو هغه خپل حق ختم كړو.اوس به هغه د معمرله اود هغه د وارثانو وي ،،

وَأَمَّا الرَّابِعُ او څلورم لفظ فَلِأَنَّ الْحَمْلَ هُوَ الْإِرْكَابُ حَقِيقَةً نو ځكه چي حمل په لغت كي سورول دي. فَيَكُونُ عَارِيَةً نودا به عاريت وي. لَكِنَّهُ يَحْتَمِلُ الْهِبَةَ،خودا يه هبه ته هم محتمل وي. يُقَالُ (لكه) ونيلي شي. حَمَلَ الْأَمِيرُ فُلَانًا عَلَى فَرَسٍ چي امير فلاني كس په اس باندي سور كړو. وَيُرَادُ بِهِ التَّمْلِيكُ او ددي نه تمليك مراد كيږي. فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ نِيَّتِهِ نو د نيت په وخت به په دي باندي محمول كولي شي.

**تشريح:** څلورم لفظ يعني حمل (سورولو) سره د هبه منعقد كيدلو وجه داده.چه د لفظ حمل حقيقي او لغوي معنى ارتكاب يعني سورول دي.نوپه دي معنى به دا عاريت وي.خوپه دي كي د هبه هم احتمال دي.لكه چي ونيلي شي. «حمل الأمير فلاناً على فرس» او ددي نه مراد داوي.چه امير فلاني د اس مالك كړو.نو كله ئي چي دهبي نيت اوكړو.نوهم په دي معنى به محمول كولي شي.

اعتراض* دلته كي دا اعتراض كيږي.چه علامه مرغيناني رحمه الله په عاريت كي ونيلي وو. «ان قولـه حملتـك تمليك العين» او دلته وائي. «ان حقيقة الإركاب»

خواب* دادي.چه لفظ د حمل په حقيقت كي په معنى د ارتكاب كيدل، د وضع په لحاظ سره دي.او د تمليك عين لپاره كيدل، د عرف او استعمال په لحاظ سره دي.خود عرف عام په وجه حقيقت نشي پريخودلي.نو لفظ د حمل د اسم مشترك په معنى كي شو.

### په ..كسوتك هذا الثوب.. سره د هبي حكم

(وَلَوْ قَالَ كه وي ونيل كَسَوْتُكَ هَذَا الثَّوْبَ چي ما تا ته دا كپړه واغوستله. يَكُونُ هِبَةً) نوهبه به وي. لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ التَّمْلِيكُ،ځكه چي دي سره تمليك مراد كيږي. قَالَ اللهُ تَعَالَى ﴿أَوْ كِسْوَتُهُمْ﴾ دالله تعالى ارشاد دي. ﴿أَوْ كِسْوَتُهُمْ﴾ وَيُقَالُ كَسَا الْأَمِيرُ فُلَانًا ثَوْبًا،او ونيلي شي ،، امير فلاني ته كپړه واغوستله،، أَيْ مَلَّكَهُ مِنْهُ يعني د هغي مالك ئي كړو. (وَلَوْ قَالَ كه وي ونيل مَنَحْتُكَ هَذِهِ الْجَارِيَةَ چي ما تاته دا وينځه منحه كړله. كَانَتْ عَارِيَةً) نودا عاريت

---

۲) من حديث جابر رضي الله عنه أخرجه مسلم فى الهبات رقم ۲۱ وأبوداود فى البيوع باب ۸۶ والترمذى فى الأحكام باب ... والنسائي فى العمرى باب ۳ وابن ماجه فى الهبات ۳ ومالک فى الأقضية رقم ۴۳ وأحمد فى المسند(۳۶۰۱۳)_



دي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ. په هغه دليل كوم چي موږ وړاندي روايت كړو.

**تشريح:** دلته اشكال كيداي شي.كه يوكس اوونيل.چه «منحتك هذه الجارية» نودا به عاريت وي.په دليل د مذكوره حديث ،، المنحة مردودة ،،ممكن ده.چه ځوك دا اووائي.چه منحه په معنى د هبه هم راځي ؟ نو ددي اشكال جواب دادي.چه① اول خو منحه په حقيقت كي په معنى د عاريت ده.او مجازاً په معنى د به ده.مجاز به نشي اخستلي.ځكه كله چي حقيقت متعذر وي.نو هغه وخت مجاز مستعار اخستلي شي.حالانكه دلته حقيقت متعذر نه دي. ② دوهم دا كه لفظ منحه د دواړو محتمل وي.بيا هم د هبي مرتبه اعلى (اوچته) ده.نود عاريت درجه كوم چي كم تر ده.هغه يقيني شوه.او په هبه كي شك شو.نو په هبه به نشي محمول كولي.(عين)

**فائده** صاحب د نتائج دلته په دوي (دوه) وجو سره كلام كړي دي. ① اول دا چي مسئله د منحه د مسئلي د حمل نه جدا ذكر كول،او د هبه د عدم اراده قيد نه لګول، هم دا ښائي.چه «منحتك هذه الجارية» ونيلو سره به عاريت وي.اګرچه هغه په منحه سره دهبه اراده اوكړي.حالانكه په كتاب العاريه كي ئي ونيلي وو.چه «منحتك هذا الثوب» او «حملتك هذه الدابة» ونيل به عاريت وي.په دي شرط چي په دي سره د هبي اراده نه وي.او د هغي په تعليل كي ئي ونيلي وو.چه لفظ د منحه او حمل دواړه دتمليك عين لپاره دي.اود هبي اراده نه كولو په وخت مجازاً په تمليك دمنافعو باندي محمول كيږي.نو دواړه ځايه دواړو بحثونو كي يو ډول تناقض دي.

② دوهم داچه په كتاب العاريه كي ذكر شوي حديث «المنحة مردودة» سره ددي مسئلي تعليل محل نظر دي.ځكه چي محيط كي د اصل يعني مبسوط نه نقل دي.كه يوكس اوونيل.چه«منحتك هذه الدراهم و هـذا الطعام» نودا به هبه وي.اوكه دا ئي اوونيل. «منحتك هـذه الأرض أو هـذه الجاريـة» نودا به عاريت وي.ددي نه روسته ئي ونيلي دي.چه،، اصلي دا راؤ وتلو.چه كله د لفظ منحه اضافت داسي شئ طرف ته وي.چه هغي سره انتفاع سره د بقاء د عين نه ناممكن وي.نو په داسي صورت كي به هبه وي.او كله ئي چي داسي شئ طرف ته اضافت وي.چه هغي سره انتفاع سره د بقاء د عين نه ممكن وي.نو عاريت به وي ،،(انتهى) عامو معتبرو كتابونو كي هم دغه شان ذكر دي.حالانكه ذكرشوي حديث په دي دواړو فصلونو كي هيڅ فرق نه كوي. «فعليل الفصل الثاني به ينتقض بالفصل الأول».

(وَلَوْ قَالَ دَارِي لَكَ هِبَةً سُكْنَى كه وي ونيل.چه زما كور ستا لپاره هبه سكنى دي. أَوْ سُكْنَى هِبَةً يا سكنى هبه ده. فَهِيَ عَارِيَةٌ) نودا عاريت دي. لِأَنَّ الْعَارِيَةَ مُحْكَمٌ فِي تَمْلِيكِ الْمَنْفَعَةِ ځكه چي عاريت منفعت كي قطعي دي. وَالْهِبَةُ تَحْتَمِلُهَا او هبه ددي هم محتمل دي. وَتَحْتَمِلُ تَمْلِيكَ الْعَيْنِ او د عين د تمليك هم محتمل دي. فَيُحْمَلُ الْمُحْتَمَلُ عَلَى الْمُحْكَمِ،نو محتمل به محكم باندي محمول كولي شي. وَكَذَا إِذَا قَالَ دغه ډول كه يوكس اوونيل. عُمْرَى سُكْنَى چي زما كور ستا لپاره عمرى سكنى ده. أَوْ نُحْلَى سُكْنَى يا نحلى سكنى ده. أَوْ سُكْنَى صَدَقَةً يا سكنى صدقه ده. أَوْ صَدَقَةً عَارِيَةً يا صدقه عاريه ده. أَوْ عَارِيَةً هِبَةً يا عاريه هبه ده. لِمَا قَدَّمْنَاهُ. په هغه وجه كومه چي موږ وړاندي بيان كړله

**تشريح:** په،، هبة سكنى ،، او،، سكنى هبة،، كي لفظ هبه د حال يا تميز كيدلو په بناء باندي منصوب دي. «لما فى قوله دارى لك من الإبهام» مطلب دادي.كه واهب دا اووائي.چه «دارى لك هبة سكنى» يا داسي اووائي.چه «دارى لك سكنى هبة» نو په دي سره به هبه نه كيږي.ځكه چي لفظ د سكنى په تمليك د منفعت كي محكم دي.نو په دي سره به عاريت وي.هبه به نه وي.كه لفظ د هبه مقدم ذكر كړي.اوكه مؤخر ذكر كړي.او قاعده داده.كه د ايجاب لفظ په تمليك رقبه باندي دلالت كوي.نو هبه به وي.اوكه په تمليك د منافعو باندي دلالت كوي.نو عاريت به وي.اوكه د دواړو احتمال وي.نود نيت اعتبار به وي.اوس په مذكوره كلام كي دوي (دوه) احتماله دي. ① يودا چي تمليك د منفعت مراد وي.ځكه چي لفظ د سكنى د تمليك منفعت لپاره قطعي

دي.د تمليك عين احتمال نشته.④ او لفظ د هبه ني چي كوم ددي سره ملاؤ كړي دي.په دي كي د تمليك عين او تمليك منفعت دواړو احتمال دي.نوكه د لفظ سكنى احتمال اوكړي شي.نودا خالص عاريت دي.اوكه د لفظ هبه لحاظ اوساتلي شي.نود عاريت او هبه دواړو احتمال دي.نو محتمل به پريخودلي شي.او قطعي معنى باندي به محمول كولي شي.

(وَلَوْقَالَ هِبَةٌ) او كه دا ني اوونيل.چه هبه ده. تَسْكُنُهَا ته په دي كي اوسيږه. فَهِيَ هِبَةٌ) نودا به هبه وي. لِأَنَّ قَوْلَهُ تَسْكُنُهَا مَشُوْرَةٌ خكه چي دده قول ،، لتسكنها ،، مشوره ده. وَلَيْسَ بِتَفْسِيْرٍ لَهُ د هبه تفسير نه دي. وَهُوَتَنْبِيْهٌ عَلَى الْمَقْصُوْدِ اودا په مقصود باندي تنبيه ده. بِخِلَافِ قَوْلِهِ هِبَةٌ سُكْنَى لِأَنَّهُ تَفْسِيْرٌ لَهُ په خلاف د به سكنى چي دا ددي تفسير دي.

تشريح: يعنى دده ،، تسكنها ،، ونيل.ددي هبي تفسير نه دي.بلكه د مشوري په طور دي.وجه داده.چه تسكنها فعل دي.چه دا د اسم ( هبه) تفسير نشي كيدلي.په خلاف د ،،هبة سكنى ،، چي سكنى اسم دي.نودا د دوهم اسم ( هبه) تفسير كيداي شي.كه څوك اوواني.چه آيت ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيْمٍ تُؤْمِنُوْنَ بِاللهِ وَرَسُوْلِهِ﴾ كي ( تُنْجِيْكُمْ) او ( تُؤْمِنُوْنَ ) فعل د اسم ﴿تِجَارَةٍ﴾ تفسير دي.ځواب دادي.چه دا تفسير نه دي.بلكه تبيين دي.او په تفسير او تبيين كي توپير دي.

## د هبه مشاع بحث

قَالَ: (وَلَا تَجُوْزُ الْهِبَةُ فِيْمَا يُقْسَمُ) او جائز نه ده.هبه په قابل ويش څيزونو كي. إِلَّا مَحُوْزَةً مَقْسُوْمَةً، خودا چي د حقوقو نه فارغ او ويش شوي وي. وَهِبَةُ الْمُشَاعِ فِيْمَا لَا يُقْسَمُ جَائِزَةٌ) اود غير ويش شوي هبه په هغه كي كوم چي نشي تقسيميدلي.جائز ده.

تشريح: په دي قول كي د هبه مشاع بيان دي.چه دا يو اهم (او ضروري ) بحث دي.چه دا جائز ده اوكه نه ده؟ د بحث د تشريح نه وړاندي يو څو شيان ذهن كي كينول پكار دي. ① اول داچه د ﴿ما يقسم او ما لا يقسم﴾ نه څه مراد دي ؟نو پوهيدل پكار دي.[1] چي هر هغه شئ چي د هغي لپاره تبعيض (ټكړي ټكړي كول) مضر وي.او د هغي په ماليت كي نقصان اچوي.هر داسي څيز ،، ما لا يقسم ،، دي.لكه دراهم او دنانير.او كوم چي ددي نه علاوه دي.هغه ،، ما يقسم ،، دي.[2] بعضو په دي كي داسي فرق كړي دي.چه كوم شيان د ويش نه روسته بالكل قابل انتفاع پاتي نشي.لكه يو غلام، يا يو څاروي. يا كومه انتفاع چي د ويش نه وړاندي كيداي شوه.هغه فوت شي.لكه وړوكي كور، وړوكي حمام، او د اوبو جرنده وغيره.نو داسي شيان ،، ما لا يقسم ،، دي.او ددي نه علاوه ،، ما يقسم ،، دي.(۳) د فرق دريمه وجه داده.چه هر داسي شئ كوم چي په دوو كي مشترك وي.او په دوى كي يو كس ويش غواړي. دوهم نه غواړي.او قاضى د ويش نه غوښتونكي په ويش باندي مجبوره نكړي.هر داسي څيز ،، ما لا يقسم ،، دي.او ددي نه ما سوا ،، ما يقسم ،، دي. ② دويمه دا چي په قابل ويش څيزونو كي د هبه مشاع (غيرمقسوم) د عدم جواز مطلب دادي.چه ملك نه ثابتيږي.دا مطلب نه دي.چه هبه باطليږي.نو په قابل ويش څيزونو كي د مشاع عقد هبه به جائز وي.خو ملكيت به هغه وخت ثابتيږي .كله چي ويش اوكړي.او جدا ني كړي.اودا محوز ( ويش شوي) وي.يعنى دي سره د واهب هيڅ تعلق پاتي نشي. ③ دريم داچه د شيوع اعتبار د هبي په وخت دي.دعقد په وخت نه دي.تردي كه د مشاع هبه ني اوكړله بيا ني ويش سره جدا كړو.او وي سپارلو.يا ني نيم كور هبه كړو.اود سپارلو نه وړاندي ني پاته نيم هم هبه كړو، او وي سپارلو.نو هبه به جائز وي. ④ څلورم دا چي هبه كي چونكه قبضه منصوص ده. په دي وجه به د قبضي د كمال په طريقه كيدل شرط وي.لكه په لمونځ كي استقبال د قبلي چونكه په نص سره مشروط دي.خكه كامل استقبال ضروري دي.تردي چي صرف د حطيم استقبال به كافي نه وي.هركله چي دا خبري په [...] كي كيناستلي.نو اوس مخكني متن ته اوګورئ.



تشريح: په دي كي ،،محوزة ،، څخه مراد دادي.چه د واهب د ملك او دده حقوقو نه فارغ وي.ددي قيد په ذريعه په ونه باندي لګيدلي ميوي د وني نه بغير، د ګډو په شا پاندي وړي، او په مخكه باندي ولاړ فصل د زمكي نه بغير هبه كولو نه احتراز اوشو.خكه چي دي صورتونو كي موهوب شئ محوز( مقسوم) يعنى په كمال طريقه مقبوض نه دي.خكه چي دا خو د واهب ملك سره متصل دي. اود ،،مقسومة،، قيد سره د مشاع نه احتراز دي.كه په ونه كي لګيدلو ميوو باندي ني قبضه اوكړله.او هغه د موهوب له او او دده د غير (بل كس) په منځ كي مشترك وي.نو هبه به جائز نه وي.نود عبارت مطلب دا شو.چه په كومو څيزونو كي د تقسيميدلو صلاحيت دي.او واهب داسي شئ هبه كول اوغواړي.نو كه هغه محوز وي.يعنى د واهب د ملك اود هغه د حقوقو نه فارغ وي.او ويش شوي وي.نود هغي هبه صحيح ده.اوكه محوز او ويش شوي نه وي.نو هبه به صحيح نه وي.او كوم شيان چي قابل د ويش نه وي.يعنى د تقسيمولو نه روسته د انتفاع قابل پاتي نشي.نو په داسي څيزونو كي هبه مشاع يعنى هبه غيرمقسوم جائز ده.

## د امام شافعي رحمه الله نقطه نظر

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعي رحمه الله فرماني. تَجُوْزُ فِي الْوَجْهَيْنِ، چي دواړو صورتونو كي جائزده.

تشريح: امام شافعي ، امام مالك او امام احمد رحمهم الله فرماني.چه موهوب شئ كه قابل ويش وي.او كه نا قابل ويش وي.په دواړو صورتونو كي هبه مشاع جائز ده.لكه په روضه كي دي.چه ﴿يجوز هبة المشاع المنقسم و غيره سواء﴾ په جواهر مالكيه كي دي. ﴿و لا يمتنع بالشيوع و إن كان قبل القسمة﴾ په فتاوى حنابله كي دي. ﴿و تصح هبة المشاع و إن تعذرت قسمته و يصح من الشريك و غيره سواء كان مما ينقل و يحول أو لم يكن و سواء كان مما ينقسم أو مما لا يأتى قسمة كالشقص فى العبد و الدابة و الجوهرة﴾

لِأَنَّهُ عَقْدُ تَمْلِيْكٍ خكه چي دا عقد تمليك دي. فَيَصِحُّ فِي الْمُشَاعِ وَغَيْرِهِ نودا به په مشترك او غير مشترك دواړو كي صحيح وي. كَالْبَيْعِ بِأَنْوَاعِهِ، لكه څنګه چي بيع خپلو ټولو اقسامو سره (جائز ده)، وَهَذَا لِأَنَّ الْمُشَاعَ قَابِلٌ لِحُكْمِهِ، او دا خكه چي مشترك (څيز) هم د هبي حكم يعني ملك قبلوى. وَهُوَالْمِلْكُ فَيَكُوْنُ مَحَلًّا لَهُ، نودا به هم د هبي محل وي. وَكَوْنُهُ تَبَرُّعًا لَا يُبْطِلُهُ الشُّيُوْعُ او شركت د هبي احسان كيدل نه ختموى. كَالْ پور وَالْوَصِيَّةِ لكه پور او وصيت،

تشريح: دامام شافعي رحمه الله عقلي دليل دادي.چه هبه يو عقد تمليك دي.نود بيع ټولو اقسامو (صحيح، فاسد، صرف او سلم) پشان به دا هم مشاع او غير مشاع دواړه شان جائز وي.وجه داده.چه مشاع شئ د عقد هبه حكم قبلوى.او هغه حكم ملكيت دي.نو هغه به هم د هبي محلوى.خكه چي كوم شئ قابل د حكم وي.هغه قابل د عقد وي.

[1] ممكن ده.چه په دي څوك دا اوواني.چه په عقد بيع كي د قبضي احتياج نه پاتي كيږي.په خلاف د هبه،چه دا عقد تبرع او محتاج د قبض كاوه ده.نو كه هبه مشاع ته جائز اوونيلي شي.نو ددي په ضمن كي به د تقسيمولو د ضمان وجوب لازميږي.حالانكه واهب ددي تبرع نه ده كړي؟

ځواب: علامه مرغيناني رحمه الله په ﴿و كونه تبرعاً لا يبطله الشيوع﴾ ددي ځواب وركوى.چه د هبه تبرع او احسان كيدل داسي خبره ده.چه شركت دا نه باطلوى.لكه څنګه چي په پور او وصيت كي دي.كه يوكس ته ني زر درهم په دي شرط وركړل.چه نيم ستا په ذمه پور دي.او نيم بضاعت دي.نو دا مشترك پور جائز وي.او په پور كي ملكيت ثابتيږي.ددي نه بغير چي تقسيمول شرط وي.او داسي صورت په صدقه كي دي.نو لكه څنګه چي پور او صدقه د يو عقد احسان كيدلو باوجود مشترك كيدلو سره ملك كي نقصان نه راځي.دغه ډول په هبه كي هم د تقسيمولو نه وړاندي ملك ثابتيدل پكار نه دي.

## د احنافو رحمهم الله دليل

**وَلَنَا** زمونږ دليل دادي **أَنَّ الْقَبْضَ مَنْصُوصٌ عَلَيْهِ فِي الْهِبَةِ** چې قبضه منصوص عليه ده. **فَيُشْتَرَطُ كَمَالُهُ** هبه کي به كامله قبضه شرط وي. **وَالْمُشَاعُ لَا يَقْبَلُهُ إِلَّا بِضَمِّ غَيْرِهِ إِلَيْهِ**، او مشاع شئ كمال قبضه نه قبلوي، مگر داچه غير دده سره ملاؤ کړې شي. **وَذَلِكَ غَيْرُ مَوْهُوبٍ**، حالانکه دا غير موهوب نه دي.

**تشريح:** زمونږ دليل دادي چه ذکر شوى اثر ﴿لا تجوز الهبة حتى تقبض﴾ او حديث د عائشه رضي الله عنها (کوم چې په تيرو شوو صفحاتو کي تير شو) کي قبضه منصوص عليه ده. نو كامله قبضه به شرط وي. او په مشاع او غيرمقسوم شئ کي د كمال قبضه صلاحيت نشته. خو په دې طريقه چې ددې سره دوهم شئ ملاؤ کړې شي. ﴿لان الثابت من وجه دون وجه لا يكون ثابتاً مطلقاً و بدون الإطلاق لا يثبت الكمال﴾ حالانکه هغه دوهم شئ موهوب نه دې. نو په قابل ويش څيزونو کي به مشاع هبه جائز نه وي.

**وَلِأَنَّ فِي تَجْوِيزِهِ إِلْزَامَهُ شَيْئًا لَمْ يَلْتَزِمْهُ** او څکه چې په دې تجويز کي د واهب په ذمه داسې شئ لازمول دي. د کوم چې هغه التزام نه دي کړې. **وَهُوَ مُؤْنَةُ الْقِسْمَةِ**، او هغه تقسيمول دي.

**تشريح:** دويمه وجه داده. چه عقد هبه تبرع او خالص احسان وي. اوس که د غيرمقسوم هبه جائز اوګرځولي شي. اودا اووئيلي شي. چه د موهوب له ملكيت ثابت شو نو ښكاره ده. چه واهب لپاره به دا شئ تقسيمولي شي. او ورکولي به شي. نود موهوب له ملكيت تجويز کاوه سره د واهب په ذمه يو زياتي شئ يعنى د تقسيمولو خرچه لازم شوه. د کوم چې ده التزام نه وو کړې. دده مقصد خو صرف احسان کول وو.

**سوال:** دا ټيك ده. چه د واهب په ذمه د تقسيمولو د خرچې بوج لازميږي. چه دا زياتي ضرر دې. خو دا پخپله دده په رضامندئ سره لازم شوې ده. څکه چې هبه مشاع باندې دده اقدام هم دا ښائي. چه ده د تقسيمولو د ضرر التزام کړې دې؟

**خواب:** دادي. چه واهب نه په تقسيمولو سره راضي شوې دې. اونه په هغه خرچه راضي شوې دې. کوم چې په تقسيمولو باندې راځي. څکه ممکن ده. هغه په ملك مشاع سره راضي شي.

**وَلِهَذَا امْتَنَعَ جَوَازُهُ قَبْلَ الْقَبْضِ** په دې وجه د قبضې نه وړاندې ددې جواز ممتنع شو. **لِئَلَّا يَلْزَمَهُ التَّسْلِيمُ**، چې دده په ذمه سپارل لازم نشي. **بِخِلَافِ مَا لَا يُقْسَمُ** په خلاف د هغې کوم چې قابل د ويش نه دې. **لِأَنَّ الْقَبْضَ الْقَاصِرَ هُوَ الْمُمْكِنُ** څکه چې په دې کي ناقص قبضه ممکن ده. **فَيُكْتَفَى بِهِ** نو هم په دې به اكتفاء کولې شي. **وَلِأَنَّهُ لَا تَلْزَمُهُ مُؤْنَةُ الْقِسْمَةِ**. او په دې وجه هم چې د واهب په ذمه به د تقسيمولو خرچه نه لازميږي.

**تشريح:** يعنى په دې وجه چې د موهوب له ملك تجويز کاوه سره الزام ما لا يلزم لازميږي. د قبضه نه وړاندې د هبه جواز منع کړې شو. چه د واهب په ذمه دده د رضامندئ نه بغير سپارل لازم نشي. په خلاف د نا قابل ويش څيزونو. چه په دې کي ويش شرط نه دې. څکه چې دې کي ناقص قبضه ممکن ده. نو هم په دې

**وَالْمُهَايَأَةُ تَلْزَمُهُ فِيمَا لَمْ يَتَبَرَّعْ بِهِ** او څکه چې د واهب په ذمه د تقسيمولو خرچه نه لازميږي. او نمبرواري (وار) په داسې شئ کي لازميږي. د کوم سره چې ده تبرع نه ده کړې. **وَهُوَ الْمَنْفَعَةُ**، او هغه منفعت دې. **وَالْهِبَةُ لَاقَتِ الْعَيْنَ**، او هبه مال عين سره ملاقي شوې ده.

**تشريح:** دا د يو اعتراض خواب دې. کوم چې په تير شوى قول ﴿و لأنه لا يلزمه مؤنة القسمة﴾ باندې وارديږي. د اعتراض لنډيز داده. چه د نا قابل ويش څيزونو هبه جائز کيدل پكار نه ده. څکه چې دې کي اګرچه د واهب په ذمه د تقسيمولو خرچه نه لازميږي. خود نفع اخستلو مهايات (نمبرواري) لازميږي. يعنى اوس به دوى په وار وار نفع اخلي. نو الزام د ما لا يلزم خو بيا هم لازم شو؟

**خواب:** حاصل د خواب دادې. چه نمبرواري په هغه شئ کي لازم شوې ده. د کوم چې ده تبرع نه ده کړې. او هغه منفعت دې. حالانکه هبه مال عين سره ملاوهې. نو په کوم کي چې څه لازم شوى دى. هغه هبه نه ده. او کومه [illegible] هبه ده. په هغې کي هيڅ نه دى لازم شوى.



**وَالْوَصِيَّةُ لَيْسَ مِنْ شَرْطِهَا الْقَبْضُ**، او د وصيت شرط قبضه کيدل نه دى. **وَكَذَا الْبَيْعُ الصَّحِيحُ**، دغه ډول بيع صحيح، **وَأَمَّا الْبَيْعُ الْفَاسِدُ وَالصَّرْفُ وَالسَّلَمُ فَالْقَبْضُ فِيهَا غَيْرُ مَنْصُوصٍ عَلَيْهِ**، بيع فاسد، بيع فاسد، بيع صرف او سلم په يو کي هم قبضه منصوص عليه نه ده. **وَلِأَنَّهَا عُقُودُ ضَمَانٍ** او څکه چې دا ضمانتي عقدونه دى. **فَتُنَاسِبُ لُزُومَ مُؤْنَةِ الْقِسْمَةِ**، نودا د تقسيمولو د خرچې لازمولو مناسب دى. **وَالْ** پور **تَبَرُّعٌ مِنْ وَجْهٍ** او قرضه په يوه وجه تبرع ده. **وَعَقْدُ ضَمَانٍ مِنْ وَجْهٍ**، او په يوه وجه عقد ضمان دې. **فَشَرَطْنَا الْقَبْضَ الْقَاصِرَ فِيهِ دُونَ الْقِسْمَةِ عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ**، نو مونږ ناقص قبضه شرط کړله. ويش مو شرط نکړو. دواړه جهتونو باندې عمل کاوه سره، **عَلَى أَنَّ الْقَبْضَ غَيْرُ مَنْصُوصٍ عَلَيْهِ فِيهِ**. ددې نه علاوه پور کي قبضه منصوص عليه نه ده.

**تشريح:** د امام شافعى رحمه الله د قول ،، كال پور و الوصية،، خواب دې. چې زير بحث مسئله په وصيت، قرض، اود بيوع په انواعو باندې قياس کول صحيح نه دى. څکه چې د شيوع مانع کيدل هلته دى چرته چې قبضه شرط وي. اود وصيت لپاره قبضه شرط نه ده. هم دا د بيع فاسد، صحيح، د صرف او د سلم حال دې. چه ① اول خو په دې کي په يو کي هم قبضه شرط نه ده. ② دوهم دا چې مذكوره بيوع خالص احسان نه دې. بلکه ضمانتي عقدونه دى. نو هرګله چې په دې کي عاقدينو کي يو کس ته عوض او نفع حاصل شوې ده. نو په ده باندې د ويش خرچه راوستل هم لازميدل پكار دى. پاتې شوه قرضه نودا من وجه تبرع (احسان) دې. او من وجه عقد دې. تبرع په دې معنى ده. چه پور ورکول لازم او ضروري نه دې. او بله دا چې دا په بچى او غلام سره نه صحيح کيږي. او عقد ضمان په دې معنى دې. چه پور ورکونکى کوم څه ورکړې دى. د هغې په مثل به ضمان اخلى. نو قرضه کي ويش شرط نکړې شو. بلکه ناقص قبضه شرط کړې شوې ده. چه په دواړو جهتونو باندې عمل اوشى. ددې نه علاوه پور کي قبضه منصوص عليه هم نه ده. ترڅو چې ددې د كمال لحاظ اوساتلې شي.

**وَلَوْ وَهَبَ مِنْ شَرِيكِهِ** او که خپل شريك ته ئې هبه کړو. **لَا يَجُوزُ** بيا هم جائز نه ده. **لِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى نَفْسِ الشُّيُوعِ** څکه چې د حکم مدار په نفس شيوع باندې دې.

**تشريح:** که يو قابل ويش شئ په دوې (دوه) کسانو کي مشترك وي. او په دوى کي يو شريك خپله غيرمقسوم برخه خپل شريك ته هبه کړي. نو زمونږ په نيز دا هم جائز نه ده. اګرچه په دې کي د تقسيمولو د خرچې التزام نشته. څکه چې د حکم مدار په نفس شيوع باندې دې. څکه چې کومو څيزونو کي كامل قبضه ضروري ده. په هغې کي كمال قبضې نه شيوع مانع وي. البته د امام شافعى رحمه الله په نيز جائز ده. او امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دى. لکه چې د شيخ رافعى په شرح وجيز کي دي. ﴿الشافع يجوز هبة كما يجوز بيعه و لا فرق بين المقسم و غير المقسم و لا بين أن يهب من الشريك أو غيره﴾

**فائده:** د هبه مشاع مسئله سره د عقليه دلائلو ستاسو مخې ته راغله. د امام شافعى رحمه الله نقلى دليلونه دادى. ① د قيس ابن ابى حازم روايت، چې ددې تخريج ابن ابى شيبه کړې دې. ﴿قال أتى رجل رسول الله ﷺ بكبته يا رسول الله ﷺ هبها لى فانا أهل بيت نعالج الشعر فقال ﷺ نصيبى منها لك﴾ ،، يو سړې د نبى کريم ﷺ په خدمت کي د مال غنيمت د وړئ يوه ګونجئ حاضر کړله. او وې وئيل. اې د الله رسوله ﷺ! دا ماته هبه کړئ. څکه زه د داسې کورنئ سړې يم. کوم چې د وړئ په کار کي ماهر (تجربه کار) دى. نبى کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو. په دې کي چې کومه زما برخه ده. هغه ستا لپاره ده،، ابن حزم د روايت ذکر کولو نه روسته وئيلى دى. چه هرکله حنفيان په مرسل روايت، او د شريك او ابراهيم بن مهاجر روايت سره احتجاج کوى. نو بيا په دې خبر باندې د ستر ګو پټولو نه څه مطلب؟

**جواب:** دادي. چه[1] اول خو ابن حزم وغيره نه مرسل سره احتجاج جائز ګنړي. او نه شريك او ابراهيم قابل احتجاج ګنړي. نو بيا په ذکرشوى اثر کي ددوى لپاره څه حجت پاتې شو؟[2] دويمه دا چې امام ابوداؤد ابن حبان په صحيح سند سره د حضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه روايت کړې دې، ﴿قال كان رسول الله ﷺ إذا

أصاب غنيمة أمر بلالاً فنادى في الناس فيجيئون بغنائمهم فيخمسه و يقسمه فجاء رجل بعد ذالك بزمام من شعر فقال يا رسول الله ﷺ! هذا فيما كنا أصبناه من الغنيمة فقال أسمعت بلالاً ينادي ثلاثاً ؟ قال نعم ، قال فما منعك أن تجئ به ؟ فاعتذر إليه فقال كن أنت تجئ به يوم القيامة فلن أقبله عنك» ، ، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائي چه نبي كريم ﷺ سره كله غنيمت راجمع كيدلو نو نبي كريم ﷺ به حضرت بلال ؓ ته د آواز كولو حكم كولو .او هغه به اواز كولو .نو دوی (صحابو ؓ) به نبي كريم ﷺ خوا ته خپل غنيمتونه راوړل .او دوی ﷺ به د هغي نه پنځمه برخه اوبخكله .پاته به ئې مجاهدينو كي تقسيموله .يو سړی ددې ويش نه روسته د ويختو يو مهار (واګې) راوړلو .او وې وئيل اې د الله رسوله ﷺ! دا مال د غنيمت دی نبي كريم ﷺ اوفرمائيل آيا تا د بلال ؓ درې خله آواز نه وو آوريدلی؟ هغه اووئيل .ولې نه .نبي كريم ﷺ اوفرمائيل بيا ته ددې شي راوړلو نه څه شي منع كړې؟ هغه عذر اوكړو .نبي كريم ﷺ اوفرمائيل .ته هم دغه شان اوسيږه .دا به د قيامت په ورځ راوړې .او زه به ئې ستا نه نه قبلوم ، ،

[1] په مراسيل د ابوداؤد كي د اهل بصره په نوم د يزيد بن معاويه يو مكتوب (خط) نقل دی . «أما بعد فإن رجلاً سأل رسول الله ﷺ زماماً من شعر من مغنم فقال رسول الله ﷺ زمام من نار لم يكن لك أن تسألني و لم يكن لي أن أعطيه» ، ، يو سړي د نبي كريم ﷺ نه د مال غنيمت د وړئ د يو مهار سوال اوكړو .نو نبي كريم ﷺ اوفرمائيل .تا زما نه د اور د مهار سوال كړی دی .نه ستا لپاره ددې سوال جائز دی .نه ما لپاره ددې دركول جائز دی ، ،

[1] بهرحال د نبي كريم ﷺ عادت مبارك دا وو .چه دوی به د مال غنيمت نه څه شي د ويش نه وړاندې نه وركولو .لكه چې امام احمد ؒ د حضرت عباده بن الصامت ؓ حديث كي ددې صراحت نقل كړی دی . «أتركه حتى يقسم أو نقسم ثم إن شئت أعطيناك عقالاً و إن شئت أعطيناك مراراً» او د ابراهيم بن مهاجر ؒ روايت ددې خلاف دی .نو دا يقيناً دده وهم دی .او صحيح هغه دی .كوم چې امام ابوداؤد او ابن حبان ؒ د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه په سند متصل سره د ثقه راويانو نه روايت كړی دی .اوكه د ابراهيم بن مهاجر ؒ روايت صحيح اومنو .نو د نبي كريم ﷺ مذكوره ارشاد په نهي عن الغلول كي د مبالغې په طور دی . «أي لا أملك إلا نصيبي فكيف أطيب لك هذا لكبة من الغنيمة» ددې تائيد ، ذكر شوې قصې سره متعلق د امام ابوداؤد روايت ، ، عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ، ، سره ښه واضح كيږي . «فقام رجل في يده كبة من الشعر فقال أخذت هذه لا صلح بها بر ذعة لي فقال رسول الله ﷺ ما كان لي و لبني عبد المطلب فهو لك فقال اما إذا بلغت ما أرى فلا أرب لي فيها و نبذها».

③ د اسماء بنت ابي بكر ؓ روايت ، دا امام بخاري ؒ تعليقاً ذكر كړی دی . «قالت أسماء للقاسم بن محمد و ابن أبي عتيق و رثت عن أختي عائشة ؓ مالاً بالغابة و قد أعطا لي به معاوية ؓ مائة ألف فهو لكما» ، ، حضرت اسماء ؓ قاسم بن محمد او ابن ابي عتيق ته اووئيل .چه ماته د خپلې خور حضرت عائشه ؓ نه غابه كي كومه تركه ملاؤ شوه .او حضرت معاويه ؓ ماته د هغې يو لاكھ روپۍ راكولې .هغه ستاسو دواړو لپاره دی ، ، ابن حزم ؒ ددې ذكر كولو نه روسته وئيلي دی .چه دا هبه مشاع ده؟

جواب٭ دا دی .چه په دې كي دوی لپاره هيڅ حجت نشته .ځكه چې د غابه مال كه نا قابل ويش وو .نو په دې كي هيڅ جګړه نشته .هغې ته مونږ جائز وايو .او كه قابل ويش وه .نو زمونږ په نيز د شيوع اعتبار هغه وخت دی .كله چې دا د قبضې په وخت وی .هغه نه كوم چې د عقد په وخت وی .

④ د سهل بن سعد ؓ حديث ، چه ددې تخريج امام بخاري ؒ كړی دی . «أن النبي ﷺ أتي بشراب نشرب و عن يمينه غلام و عن يساره الأشياخ فقال للغلام إن أذنت لي أعطيت هؤلاء فقال ما كنت لأوثر بنصيبي منك يا رسول الله ﷺ! أحداً فتله في يده» ، ، د نبي كريم ﷺ په خدمت كي مشروب پيش كړی شو .نو نبي كريم ﷺ اوسكلې .د نبي كريم ﷺ ښې طرف ته يو هلك او چپه طرف ته بوډاګان حضرات ناست وو .نو نبي كريم ﷺ هلك ته اووئيل .كه ته ماته اجازت راكړې .نو دوی ته وركړم؟ هغه عرض اوكړو .اې د الله رسوله ﷺ! زه ستا د عطاء په اړه كي هيڅ چا ته پخپل ذات باندې ترجيح نه وركوم .نو هغه د هغه په لاس كي وركړی شو ، ، امام بخاري ؒ ددې حديث نه د هبه مشاع په صحت باندې استدلال كړی دی .چه ددې تشريح ابن بطال داسې كړې ده .چه نبي كريم ﷺ د بچي نه دا سوال اوكړو .چه هغه خپله برخه لويو (مشرانو) ته هبه كړي .حالانكه د هغه برخه مشاع وه .جدا نه وه؟

جواب٭ دا دی .چه دلته كي د بچي د مشروب برخې (حصې) هبه كولو سوال نه وو .ځكه چې د هغه برخه به خو



هغه وخت وی .كله چې هغه ده ته اورسيږی .حالانكه سوال د عطاء نه وړاندې دی .بلكه سوال ددې خبرې وو .چه بچي خپل نمبر د مشرانو لپاره پريږدی .او اولويت كوم چې دده حق دی .هغه ساقط كړی .بچي ددې لپاره تيار نشو .نو دلته كي خو هبه د سره شته هم نه .ځكه چې هبه خو بلاعوض تمليك د مال ته وائي .او د اولويت نمبر مال نه دی .او ددې پريښودل اسقاط دی .تمليك نه دی .

⑤ د عمرو بن سلمه ضمري ؓ حديث چې ددې تخريج امام احمد او نسائي ؒ كړی دی .او په كتاب الصيد كي تير شوی دی . «قال خرجنا مع رسول الله ﷺ حتى أتينا الروحاء فرأينا حمار وحش معقوراً فأردنا أخذه فقال رسول الله ﷺ دعوه فإنه يوشك أن يجئ صاحبه فجاء رجل من بهز و هو الذي عقره فقال يا رسول الله ﷺ! شأنكم والحمار، فأمر رسول الله ﷺ أبا بكر أن يقسمه بين الناس»

جواب٭ دا دی .چه ځنګلي خر وركول د اباحت په طريقه وو .د هبه په طريقه نه وو . «و شتان بين الهبة و الإباحة فإن الهبة تمليك و الإباحة إذن و تمكين».

### د غير مقسوم حصې د هبې حكم

قَالَ: (وَمَنْ وَهَبَ شِقْصًا مُشَاعًا) كه يو كس يو غير مقسوم ټكړه هبه كړله (فَالْهِبَةُ فَاسِدَةٌ) (لِمَا ذَكَرْنَا) نو هبه فاسده ده .په هغه وجه كومه چې مونږ ذكر كړله .(فَإِنْ قَسَمَهُ) بيا كه دا ويش كړی (وَسَلَّمَهُ) و اوسپاري .(جَازَ) نو جائز به وی .(لِأَنَّ تَمَامَهُ بِالْقَبْضِ) ځكه چې د هبې پوره كيدل قبضه سره كيږي .(وَعِنْدَهُ لَا شُيُوعَ) .او د قبضې په وخت هيڅ شركت نشته .

**حل اللغة:** **شقصاً:** د يو شي ټكړه ، **مشاع:** غير منقسم ، **دقيق:** اوړه ، **حنطه:** غنم ، **دهن:** تيل ، **سمسم** ونخلې ، **طحن** (ف) **طحناً:** ميده كول ، (اوړه كول) .**سمن:** غوړی ، **لبن:** شيدې ، **ضرع:** تئ ، **صوف:** وړئ ، **ظهر:** شا (ملا) **زرع:** فصل ، **نخل:** د كجورې ونه

**تشريح:** كه يو كس د مشترك شي يوه غير مقسوم ټكړه هبه كړله .نو دا هبه به فاسد وی .يعنې د محوز او مفرز (يعنې د ويش او جدا) كاوه او سپارلو نه وړاندې به ملك نه ثابتيږي .(لكنی فی نفسه هبه جائز ده .لكه څنګه چې مونږ د بحث په پيل كي وئيلي وو) وجه د فساد هم هغه ده .كومه چې وړاندې ذكر شوې ده .چه قابل ويش څيزونو كي هبه هغه وخت جائز ده .كله چې محوز او مفرز (جلا شوې) وی .بيا كه هغه دا ويش كړی .او اوسپاري .نو هبه به جائز وی .ځكه چې د هبې پوره كيدل د قبضې په ذريعه كيږي .او د قبضې په وخت هيڅ شركت نشته .نو ګويا ده د غير مشترك هبه كړې ده .

**فائده:** كه په مذكوره صورت كي موهوب له په مشاع باندې قبضه اوكړله .او دا شي هغه سره هلاك شو .نو ضامن به وی .اوكه نه؟ ابن رستم ذكر كړی دی .چه موهوب له به ضامن وی .او قبضه به مفيد د ملك نه وی .امام طحاوي ؒ هم دا اختيار كړی دی .او عصام ذكر كړی دی .چه قبضه به مفيد د ملك وی .او موهوب له به ضامن نه وی .بعض مشائخو هم دا اختيار كړی دی ، ، كذا فی فتاوی قاضی خان ، (بنايه ، كفايه)

قَالَ: (وَلَوْ وَهَبَ دَقِيقًا فِي حِنْطَةٍ) كه اوړه ئې هبه كړل .كوم چې په غنمو كي دی .(أَوْ دُهْنًا فِي سِمْسِمٍ) يا تيل كوم چې كونځلو كي دی .(فَالْهِبَةُ فَاسِدَةٌ) نو هبه فاسد ده .(فَإِنْ طَحَنَ) بيا كه اوړه كړی .(وَسَلَّمَ) و حواله ئې كړی .(لَمْ يَجُزْ) بيا به هم جائز نه وی .(وَكَذَا السَّمْنُ فِي اللَّبَنِ) دغه ډول غوړی دی .په پيو كي .(لِأَنَّ الْمَوْهُوبَ مَعْدُومٌ) ځكه كوم شي ئې چې هبه كړو .هغه معدوم دی .(وَلِهَذَا لَوِ اسْتَخْرَجَهُ الْغَاصِبُ يَمْلِكُهُ) هم دا وجه ده .كه غاصب دا اوباسي .نو هغه ددې مالك كيږي .(وَالْمَعْدُومُ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لِلْمِلْكِ) او معدوم شي د ملكيت محل نه وی .(فَوَقَعَ الْعَقْدُ بَاطِلًا) نو دا عقد باطل شو .(فَلَا يَنْعَقِدُ إِلَّا بِالتَّجْدِيدِ) نو د تجديد نه بغير به نه منعقد كيږي .(بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ) په خلاف د تير شوی .(لِأَنَّ الْمُشَاعَ مَحَلٌّ لِلتَّمْلِيكِ) ، ځكه چې مشاع محل د تمليك دی .

**تشريح:** اوكه يوكس هغه اوړه كوم چې په غنمو كې دي. يا تيل كوم چې په كونځلو كې دي. يا كچ كوم چې په پيو كې دي. هبه كړل. نودا هبه فاسد ده. اوس كه غنم اوړه كړي او اوړه هغه ته اوسپاري. يا كونځلو نه تيل اوباسي. او تيل هغه ته حواله كړي. بيا به هم جائز نه وي. ځكه چې د هبې په وخت اوړه، تيل او كچ موجود نه وو. معدوم (غيرموجود) وو. (تردې كه يوكس غنم، كونځلې، يا شيدې غصب كړي. او اوړه، تيل يا كچ اوباسي. نودې به د مغصوب ضامن وي. اوددې څيزونو به مالك وي. ځكه چې د غصب په وخت دا شيان موجود نه وو. نو په دې باندې د غصب فعل نه دې واقع شوې). او معدوم شئ ملك نه وي. نو عقد باطل شو. نو په اوړه كيدلو باندې دوباره هبه كول پكار دي. د تجديد (دوباره هبه كولو) نه بغير به هبه نه منعقد كيږي. په خلاف د زمكې وغيره يعنى د غير مقسوم د يوې برخې (حصې) د هبه كاوه نه، چه دا منعقد كيږي. خو ملكيت نه كيږي. ځكه چې كوم شئ مشاع موجود دې. هغه محل د تمليك دې. نو په دې كې صرف د ويش ارتيا دې. پاتې شو دا اشكال چې اوړه وغيره اګرچه بالفعل موجود نه دي. خو بالقوه خو موجود دي ؟

خواب: نو ددې خواب دادې، چه ددې هيڅ اعتبار نشته. ګنې ښكاره ده. چه د عامو ممكناتو هم دا حال دې. حالانكه دې ته موجود نه وئيلې كيږي.

> **وَهِبَةُ اللَّبَنِ فِي الضَّرْعِ** او په تئينو كې شيدې، **وَالصُّوفِ عَلٰى ظَهْرِ الْغَنَمِ** ګډې په ملا باندې وړۍ، **وَالزَّرْعِ وَالنَّخْلِ فِي الْأَرْضِ وَالتَّمْرِ فِي النَّخِيلِ بِمَنْزِلَةِ الْمُشَاعِ** ،مځكه كې لګيدلې فصل يا ونې. د كجورې په ونه كې لګيدلې كجورې هبه كول په منزله د هبه مشاع ده. **لِأَنَّ امْتِنَاعَ الْجَوَازِ لِلْاِتِّصَالِ** ځكه چې د جواز ممتنع كيدل د اتصال په وجه دي. **وَذٰلِكَ يَمْنَعُ الْقَبْضَ كَالشَّائِعِ** اودا د مشاع پشان د قبضې نه مانع ده.

**تشريح:** په تئينو كې شيدې ، د ګډ په شا د وړۍ، مځكه كې لګيدلې فصل يا ونې وغيره، د كجورې په ونه كې د لګيدلو كجورو هبه كول په منزله د هبه مشاع دي. يعنى اصل هبه منعقد كيږي. خود جواز حكم به نه وي.،، وعند الثلاثة يجوز،، ځكه چې دې څيزونو كې د جواز امتناع د واهب ملك سره د اتصال په وجه ده. (او اتصال د قبضې مانع دې. لكه څنګه چې مشاع كې كيږي. ددې څيزونو د معدوم كيدلو په وجه نه دي.

### د موهوب له په قبضه كښې د معين څيز هبه كولو كښې د قبضه جديد حكم

> **قَالَ:** ﴿**وَإِذَا كَانَتِ الْعَيْنُ فِي يَدِ الْمَوْهُوبِ لَهُ**﴾ كله چې عين شئ د موهوب له په قبضه كې وي. **مَلَكَهَا بِالْهِبَةِ** نو ددې په هبه كاوه سره به مالك كيږي. ﴿**وَإِنْ لَمْ يُجَدِّدْ فِيهَا قَبْضًا**﴾ اګرچه په دې باندې جديد (دوباره) قبضه اونكړي. **لِأَنَّ الْعَيْنَ فِي قَبْضَتِهِ** ځكه چې عين موهوب دده په قبضه كې دې. **وَالْقَبْضُ هُوَ الشَّرْطُ**، او قبضه شرط ده. **بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ مِنْهُ** په خلاف ددې كله چې مالك د هغه په لاس خرڅ كړې وي. **لِأَنَّ الْقَبْضَ فِي الْبَيْعِ مَضْمُونٌ** ځكه چې د بيع قبضه ضمانتي وي. **فَلَا يَنُوبُ عَنْهُ قَبْضُ الْأَمَانَةِ**، نو امانتي قبضه به ددې نائب نه جوړيږي. **أَمَّا قَبْضُ الْهِبَةِ فَغَيْرُ مَضْمُونٍ** اود هبه قبضه ضمانتي نه وي. **فَيَنُوبُ عَنْهُ**. نودا به ددې نائب جوړيږي.

**تشريح:** ددې مسئلو قاعده داده. چه كله دوې (دوه) قبضې د يو جنس وي. نوهر يو د بل نائب جوړيدې شي. او كله چې دواړه قبضې متغاير وي. نو اعلى د ادنى نائب كيداې شي. ادنى د اعلى نائب كيداې نشي. ددې مثال باندې داسې پوهه شئ: كه زيد يوڅيز د غصب په ذريعه يا د عقد فاسد په ذريعه پخپله قبضه كې واخستلو. بيا مالك هم دده په لاس د بيع صحيح په طور باندې خرڅ كړو. نود جديد قبضې ضرورت نشته. ځكه چې دا دواړه قبضې ضمانتي دي. او كه مالك دا هبه كړي. بيا هم د جديد قبضې ضرورت نشته. ځكه چې دا قبضه اعلى ده. نو قبضه به د هبه نائب كيږي. اوكه دا شئ د وديعت يا عاريت په طور باندې د مخكې نه دده په قبضه كې وي. بيا ئې مالك ده ته هبه كړي. لكه چې په زيربحث مسئله كې هم دا صورت دې. نو په دې كې هم د جديد قبضې ضرورت نشته. ځكه چې دواړه قبضې امانتي دي. اوكه مالك ئې دده په لاس خرڅ كړي. نود جديد قبضې به ضرورت وي. ددې نه بغير به موهوب له ددې مالك نه وي. ځكه چې د بيع قبضه ضمانتي ده. چه دا



اعلى ده. نو ددې نائب امانتي قبضه نشي كيدلې. ځكه چې دا ادنى ده.

> **قَالَ:** فرمائي ﴿**وَإِذَا وَهَبَ الْأَبُ لِابْنِهِ الصَّغِيرِ هِبَةً**﴾ كله چې پلار خپل ماشوم بچي ته يو څيز هبه كړي **مَلَكَهَا الْاِبْنُ بِالْعَقْدِ**﴾ نو په عقد كولو سره ځوئې د هغې مالك جوړيږي **لِأَنَّهُ فِي قَبْضِ الْأَبِ فَيَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الْهِبَةِ**،

**تشريح:** كه پلار خپل صغير بچي ته څه شئ هبه كړو. نو زوې د عقد هبه په ذريعه ددې مالك كيږي. ځكه چې د صغير پلار د صغير د اړخه قبضه كوي. اودا شئ د پلار په قبضه كې موجود دې. نودا موجوده قبضه د هبه د قبضې نائب جوړيږي. بيا په دې قبضه كې څوك ګواه جوړول شرط نه دي. البته احتياط هم په دې كې دي. چه ګواهان مقرر كړي. چه د پلار د مرګ نه روستـه يا د بچي د بالغ كيدلو نه روسته وارثان ددې انكار اونكړي. او كه هغوى انكار اوكړي. نو چې ګواهانو سره ددې اثبات اوشي.

> **وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ فِي يَدِهِ أَوْ فِي يَدِ مُودِعِهِ** او هيڅ توپير نشته. په دې كې چې دا د پلار په قبضه كې وي. **لِأَنَّ يَدَهُ كَيَدِهِ**، ځكه چې د مودع قبضه د پلار د قبضې پشان ده.

**تشريح:** د پلار هبه كړې شوې شئ كه په حقيقت كې د پلار په قبضه كې وي. يا پلار چا سره وديعت ايخودې وي. په دې كې هيڅ توپير نشته. ځكه چې د مودع قبضه حكماً د مودع د قبضې پشان ده.

سوال: كه مالك مودع ته مال د وديعت هبه كړو. نودا ستا په قول جائز ده. نوكه د مودع قبضه د مودع د قبضې پشان وي. نو په دې صورت كې هغه د خپل ځان لپاره قبضه كونكې نشو؟

خواب: د مودَع (بفتح الدال) قبضه د مودِع د قبضې پشان كيدل هغه وخت دي. كله چې هغه د وديعت په ساتنه كې مودع لپاره عمل كونكې وي. اودا د تمليك بالهبه نه مخكې مخكې دي. او كله چې مودع دا هبه كړو. نو هغه (مودع) خپل ځان لپاره عمل كونكې شو.

> **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ مَرْهُونًا** په خلاف ددې كله چې دا مرهون وي. **أَوْ مَغْصُوبًا** يا مغصوب وي. **أَوْ مَبِيعًا بَيْعًا فَاسِدًا** يا مبيع وي. د بيع فاسد په طور. **لِأَنَّهُ فِي يَدِ غَيْرِهِ أَوْ فِي مِلْكِ غَيْرِهِ**، ځكه چې دا د پلار نه سوا د بل په قبضه كې يا د بل په ملك كې دي. **وَالصَّدَقَةُ فِي هٰذَا مِثْلُ الْهِبَةِ**، او صدقه په دې ټولو صورتونو كې د هبه پشان ده. **وَكَذَا إِذَا وَهَبَتْ لَهُ أُمُّهُ وَهُوَ فِي عِيَالِهَا** دغه ډول كله چې صغير ته دده مور څه هبه كړل. په داسې حال كې چې هغه ددې په عيال كې دي. **وَالْأَبُ مَيِّتٌ** او پلار مړې شوې دې. **وَلَا وَصِيَّ لَهُ**، او دده څوك وصى هم نشته.

**تشريح:** پلار چې كوم شئ صغير بچي ته هبه كړو. كه دغه شئ پلار د چا سره رهن ايخودې وي. يا دا چا غصب كړې وي. يا پلار د بيع فاسد په طور خرڅ كړې وي. او مشترى ته ئې سپارلې وي. نو په دې صورتونو كې به صرف عقد هبه سره قبضه نه كيږي. ځكه چې دغه شئ (د رهن او غصب په صورت كې) د بل ملك دې. ﴿فلا ينوب قبض المرتهن و الغاصب عن قبض الهبة للولد﴾

سوال: كله چې موهوب شئ د مودع په قبضه كې وي. نو هبه تام كيدل پكار نه دي. ځكه چې هبه كې كامله قبضه شرط ده. اود مودع قبضه حكمى ده. چه دا د حقيقى قبضې په نسبت ناقص ده.

خواب: د هبه د اتمام لپاره حكمى قبضه كافى ده. په دې وجه هبه صرف تخليه كاوه سره جائز كيږي. په خلاف د هبه شائع، چه ددې قبضه د كل په ضمن كې وي.،، والضمنى كان لم يكن،،

> **وَكَذٰلِكَ كُلُّ مَنْ يَعُولُهُ** دغه ډول هرهغه كس څوك چې دده پرورش كوي.

**تشريح:** دغه ډول هر هغه سړې كوم چې د بچي پرورش كوي. لكه رور، تره، اجنبى (پردې) او هغه بچي ته څه شئ هبه كړي. نو ددې هم دا حكم دې. چه بچي لپاره موهوب شئ باندې دده قبضه كول جائز دي. د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز كه د بچي لپاره پلار نه علاوه نورو اولياؤ څه شئ هبه كړو. نوديوكس وكيل كول ضرورى دي. چه هغه ئې دده د اړخه قبول كړي. او په دې باندې قبضه اوكړي. خو ابن قدامه په المغنى كې دې ته صحيح وئيلې دي. چه په دې سلسله كې پلار او دده نه علاوه واړه برابر دي. بيا دلته ﴿و كذا كل من يعوله﴾ اګرچه

مطلق دي.خو په ايضاح او مختصر الكرخي كي دي.چه دوی لپاره د قبضي ولايت هغه وخت دي.كله چې پلار، دده وصی ، د پلار نه روسته نيكه، د نيكه وصی ، هيڅ څوك موجود نه وی.

## صغير ته هبه شوی څيز باندې د پلار د قبضې حکم

(وَإِنْ وَهَبَ لَهُ أَجْنَبِيٌّ هِبَةً) كه صغير ته كوم اجنبی (پردی سړی) څه شئ هبه كړو. (تَمَّتْ بِقَبْضِ الْأَبِ) نود پلار په قبضې سره هبه تام كيږي. لِأَنَّهُ يَمْلِكُ عَلَيْهِ الدَّائِرَ بَيْنَ النَّافِعِ وَالضَّارِّ څكه چې هركله پلار د بچی په حق كي د داسې امر مالك دي.كوم چې د ګټور او نقصان ده په منځ كي دائر وی. فَأَوْلَى أَنْ يَمْلِكَ الْمَنَافِعَ نو صرف د نافع امر به په طريقه اولی مالك وی. قَالَ (وَإِذَا وَهَبَ لِلْيَتِيمِ هِبَةً) كه د يتيم لپاره څه شئ هبه كړې شو. (فَقَبَضَهَا لَهُ وَلِيُّهُ) و د هغه ولی په دې باندې قبضه اوكړله. (وَهُوَ وَصِيُّ الْأَبِ أَوْ جَدُّ الْيَتِيمِ أَوْ وَصِيُّهُ) و ولی د پلار وصی ، يا د تيم نيكه، يا د نيكه وصی دې. (جَازَ) نودا جائز ده. لِأَنَّ هَؤُلَاءِ وِلَايَةً عَلَيْهِ لِقِيَامِهِمْ مَقَامَ الْأَبِ څكه چې دې خلګو ته يتيم باندې ولايت حاصل دې.دده د پلار د قائم مقام كيدلو په وجه. (وَإِنْ كَانَ فِي حِجْرِ أُمِّهِ) او كه مذكوره يتيم د مور په پرورش كې وی. (فَقَبْضُهَا لَهُ جَائِزٌ) نو يتيم لپاره د مال قبضه كول جائز دی. لِأَنَّ لَهَا الْوِلَايَةَ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى حِفْظِهِ وَحِفْظِ مَالِهِ. څكه چې مور لپاره ولايت دې.په هغه امورو كې كوم چې بچی او دده د مال ساتنه اړخ ته راجع دی. وَهَذَا مِنْ بَابِهِ او هبه باندې قبضه كول هم د ساتنه د باب څنې ده. لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى إِلَّا بِالْمَالِ څكه چې هغه د مال نه بغير پاته نشی پاتې كيدلې. فَلَا بُدَّ مِنْ وِلَايَةِ التَّحْصِيلِ نو كوم شئ چې نافع دې.د هغې د حاصلولو ولايت ضروری دې. (وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي حِجْرِ أَجْنَبِيٍّ يُرَبِّيهِ) دغه ډول كه هغه د يو اجنبی په غيږه كې وی.چه دده پرورش كوی. لِأَنَّ لَهُ عَلَيْهِ يَدًا مُعْتَبَرَةً. څكه چې اجنبی ته په ده باندې معتبر ولايت حاصل دې. أَلَا تَرَى آيا نه ګوری. أَنَّهُ لَا يَتَمَكَّنُ أَجْنَبِيٌّ آخَرُ أَنْ يَنْزِعَهُ مِنْ يَدِهِ چې بل اجنبی نې دده د پرورش نه نشی اوښكلي. فَيَمْلِكُ مَا يَتَمَحَّضُ نَفْعًا فِي حَقِّهِ نو دا اجنبی به د هر هغه امر مالك وی.كوم چې د بچی په حق كې خالص نافع وی.

**حل اللغة:** **نافع:** ګټور ، **ضائر:** نقصان ده، **جلد:** نيكه، **حجر:** غيږه، پرورش، پالنه، **يربيه:** پرورش كول، **ينزعه** (ض) **نزعاً:** رابښكل، راوښكل، **يتمحض تمحضاً:** خالص كيدل، **زفاف:** ناوې ميړه ته ليږل، **تفويض:** سپارل، حواله كول، **يعول** (ن) **عولاً:** د ژوند د ضرورتونو كفالت كول.

**تشريح:** كه صغير بچی ته څه شئ هبه كړې شی.او دهغه ولی (يعنی د بچی د پلار وصی يا د بچی نيكه يا د نيكه وصی) په موهوب شئ باندې قبضه اوكړی.نودا جائز ده.څكه چې بچی باندې دې خلقو ته ولايت حاصل دې.ددې مطلب دادې.چه دا خلق ددې د بچی د پلار قائم مقام دی.او كه ماشوم بچې د خپلې مور په كفالت كې وی.نو په موهوب شئ باندې د مور قبضه كول هم جائز ده.څكه چې كوم امور د صغير ذات يا دده د مال حفاظت طرف ته راجع دی.په هغې كې دده مور ته ولايت حاصل دې.او په هبه باندې قبضه كول هم د حفاظت د باب څنې دی.چه دمال نه بغير د بچی بقاء مشكل ده.دغه شان كه مذكوره صغير د يو اجنبی سړی په غيږ كې پرورش حاصلوی.او په مذكوره څلور واړه كسانو (اولياؤ) كې هيڅ څوك موجود نه وی.نود اجنبی قبضه كول جائز دی.څكه چې دې اجنبی ته هم ولايت حاصل دې.تردې چې بل څوك اجنبی سړې دا بچې دده د قبضې نه نشی اوښكلي.

(وَإِنْ قَبَضَ الصَّبِيُّ الْهِبَةَ بِنَفْسِهِ) وكه بچی پخپله هبه باندې قبضه اوكړله. (جَازَ) نو جائز ده. مَعْنَاهُ إِذَا كَانَ عَاقِلًا ددې مطلب دادې.كله چې بچې سمجدار (هوښيار) وی. لِأَنَّهُ نَافِعٌ فِي حَقِّهِ څكه چې دا دده په حق كې نافع دی. وَهُوَ مِنْ أَهْلِهِ. او هغه ددې اهل دې.

**تشريح:** كه بچی ته څه شئ هبه كړې شو.او په هغې باندې بچی پخپله قبضه اوكړله.نودا زموږ په نيز استحساناً جائز دی.(په دې شرط چې بچې هوښيار وی).د امام محمد رحمه الله نه هم يو روايت دغه دې. دوهم



روايت دادې.كه د ولی په اجازت سره ئې قبضه اوكړله.نو جائز ده.ګنې نه ده.د امام شافعی رحمه الله په نيز د بچی قبضه كول جائز نه دی.اګرچه هغه عاقل وی.د قياس تقاضا هم دادہ.څكه چې د بلوغ نه وړاندې د بچی هيڅ يو فعل معتبر نه دې.خاص كر په داسې كار كې چې د هغې حاصلول د غير په ذريعه ممكن وی.څكه چې د بچی د عقل اعتبار د اړتيا په وجه دې.او اړتيا د هغه امورو څنې دې.كوم چې د غير نه نه حاصليږی.په دې وجه امام شافعی رحمه الله د بچی د اسلام په صحت كې دده د عقل اعتبار نه كوی.البته دده په وصيت كې اود احد الابوين په اختيارولو كې ددې اعتبار كوی.څكه چې ددې حاصلول د غير په ذريعه ناممكن دی.وجه د استحسان دادہ.چه هبه باندې قبضه كول دده په حق كې خالص نفع ده.او ده ته د قبضې لياقت (او قابليت) حاصل دې.

وَفِيمَا وَهَبَ لِلصَّغِيرَةِ او په هغه شئ كې كوم چې هبه كړې شو.د صغيرې ښځې دپاره، يَجُوزُ قَبْضُ زَوْجِهَا لَهَا بَعْدَ الزِّفَافِ نو ددې ميړه لپاره د زفاف (وادۀ) نه روسته قبضه كول جائز دی. لِتَفْوِيضِ الْأَبِ أُمُورَهَا إِلَيْهِ دَلَالَةً څكه چې پلار د صغيرې امور ددې ميړه ته سپارلی دی.د دلالت په طريقه، بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الزِّفَافِ په خلاف ددې چې د وادۀ نه وړاندې وی. وَيَمْلِكُهُ مَعَ حَضْرَةِ الْأَبِ، او ميړه د قبضې مالك كيږی.د پلار د ژوند باوجود. بِخِلَافِ الْأُمِّ په خلاف د مور، وَكُلِّ مَنْ يَعُولُهَا غَيْرُهَا حَيْثُ لَا يَمْلِكُونَهُ او دهر هغه كس كوم چې د صغير (وړو بچو) پرورش كوی.چه دوی د قبضې مالك نه جوړيږی. إِلَّا بَعْدَ مَوْتِ الْأَبِ خود پلار د مرګ نه پس. أَوْ غَيْبَتِهِ غَيْبَةً مُنْقَطِعَةً فِي الصَّحِيحِ يا د هغه د غيبت منقطعه په طور د غائب كيدلو نه پس، په صحيح قول كې. لِأَنَّ تَصَرُّفَ هَؤُلَاءِ لِلضَّرُورَةِ لَا بِتَفْوِيضِ الْأَبِ. څكه چې ددوی تصرف د اړتيا په وجه دې.د پلار تفويض (او سپارلو) سره نه دې. وَمَعَ حُضُورِهِ لَا ضَرُورَةَ او د پلار په موجودګۍ كې هيڅ اړتيا نشته.

**تشريح:** كه د يو كس صغيره ښځې ته يعنی نا بالغه ښځې ته څه شئ هبه كړې شو.او ددې ميړه قبضه كړو.نو كه دا صغيره د ميړه كور ته ليږلې شوې وی.نود ميړه قبضه كول جائز دی.څكه چې د صغيرې متولی اګرچه ددې پلار دې.خود پلار صغيره ميړه ته ليږل (او رخصت كول) ددې خبرې دليل دې.چه هغه د صغيرې امور ددې ميړه ته اوسپارل.اوكه دا ميړه ته ليږلې شوې نه وی.نود ميړه قبضه كول به جائز نه وی.څكه چې مذكوره دليل اونه موندلې شو.بيا علامه مرغينانی رحمه الله وادۀ ذكر كړې دې.او په ايضاح كې دخول ذكر دې.او په ذخيره كې د صغيرې د جماع قابل كيدل شرط دی.خو صحيح هم هغه دی.كوم چې علامه مرغينانی رحمه الله ذكر كړی دی.

## د دوو سړو خپل مشتركه كور د هبه كولو حكم

قَالَ: (وَإِذَا وَهَبَ اثْنَانِ مِنْ وَاحِدٍ دَارًا) كه هبه كړو.دوې (دوه) سړو يو كس ته خپل مشتركه كور. (جَازَ) نو جائز دی. لِأَنَّهُمَا سَلَّمَاهَا جُمْلَةً څكه چې دوی مجموعه كور اوسپارلو. وَهُوَ قَدْ قَبَضَهَا جُمْلَةً او هغه په مجموعه باندې قبضه اوكړله. فَلَا شُيُوعَ نو دلته كې شيوع نشته. (وَإِنْ وَهَبَهَا وَاحِدٌ مِنْ اثْنَيْنِ) وكه يو كور يو سړی دوې (دوه) كسانو ته هبه كړو. (لَا يَجُوزُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ) [1] نو جائز نه دی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،

**تشريح:** كه دوې (دوه) سړو يو كور يو سړی ته هبه كړو.نو هبه صحيح ده.څكه چې دواړو پوره كور موهوب له ته حواله كړې دې.او موهوب له په پوره باندې قبضه كړې ده.نو شيوع او نه موندې شو.نو هبه صحيح ده.خو ددې عكس صحيح نه دې.يعنی كه يو سړې خپل كور دوې (دوه) سړو ته هبه كړی.نو د امام صاحب او امام زفر

---

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فی كنز (٣٠٩) وملتقی الأبحر(٣\٤٩٧) وردالمحتار(١٤\٥٧٤) ومجمع الأنهر (٣\٤٩٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٢٢)_

رحمهما الله په نيز صحيح نه ده.

(وَقَالَا يَصِحُّ) صاحبين رحمهما الله فرمائي چه صحيح دي. لِأَنَّ هَذِهِ هِبَةُ الْجُمْلَةِ مِنْهُمَا، ځكه چې دا دوی دواړو ته په يو ځل هبه ده. إِذِ التَّمْلِيكُ وَاحِدٌ ځكه چې تمليك يو دي. فَلَا يَتَحَقَّقُ الشُّيُوعُ نو شيوع به نه متحقق كيږي. كَمَا إِذَا رَهَنَ مِنْ رَجُلَيْنِ. لكه چې دوي (دوه) كسانو سره يو كور رهن كيږدي.

تشريح: د صاحبينو رحمهما الله په نيز صحيح ده. ځكه چې تمليك متحد او عقد واحد دي. نو شيوع پاتې نشو. لكه ځنګه چې يو شئ دوي (دوه) كسانو سره ګاهره ايښودل صحيح دي.

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي. أَنَّ هَذِهِ هِبَةُ النِّصْفِ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا، چې دا په دوی دواړو كي هر يو كس ته نصف كور هبه كول دي. وَلِهَذَا لَوْ كَانَتْ فِيمَا لَا يُقْسَمُ په دې وجه كه دا هبه په نا قابل ويش شئ كي وه. فَقَبِلَ أَحَدُهُمَا صَحَّ، او په دوی كي يو كس قبول كړې وه. نو صحيح كيدله. وَلِأَنَّ الْمِلْكَ يَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي النِّصْفِ او ځكه چې په دوی كي هر يو كس لپاره په نصف كي ملك ثابتيږي. فَيَكُونُ التَّمْلِيكُ كَذَلِكَ، نو تمليك به هم دغه شان وي. لِأَنَّهُ حُكْمُهُ، ځكه چې ملكيت د تمليك حكم دي. وَعَلَى هَذَا الِاعْتِبَارِ يَتَحَقَّقُ الشُّيُوعُ، او په دې اعتبار سره به شيوع متحقق كيږي.

تشريح: امام صاحب رحمه الله فرمائي. چه واهب هر يو كس ته نصف نصف كور هبه كړې دي. او نصف غير معين او غير مقسوم دې. نو په محتمل القسمة كي شيوع اوموندې شو. كوم چې د هبة د جواز لپاره مانع دې. كه هم دا هبه په نا قابل ويش شئ كي وه. او په دوی دواړو كي يو قبوله كړې وه. نو هبه به صحيح كيدله. ددې نه معلومه شوه. چه ګويا ده د هر يو لپاره جدا جدا نصف برخه هبه كړو. او په دې وجه همه چې دوی دواړو كي هر يو لپاره نصف كي ملكيت ثابتيږي. نو تمليك به هم دغه شان د نصف نصف وي. ځكه چې ملكيت د تمليك حكم يعنی ددې اثر دې. نو په دې اعتبار سره شيوع متحقق شو.

بِخِلَافِ الرَّهْنِ، په خلاف د رهن، لِأَنَّ حُكْمَهُ الْحَبْسُ، ځكه چې ددې حكم منع كول (او خان سره ساتل) دی. وَيَثْبُتُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَامِلًا، إِذْ لَا تَضَايُفَ فِيهِ فَلَا شُيُوعَ او منع كول په دوی كي هر مرتهن ته پوره حاصليږي. نو په دې كي هيڅ شيوع نشته. وَلِهَذَا لَوْ قَضَى دَيْنَ أَحَدِهِمَا په دې وجه كه په دوی كي ئې د يو كس قرضه خلاصه كړله. لَا يَسْتَرِدُّ شَيْئًا مِنَ الرَّهْنِ. نو د رهن نه هيڅ هم واپس نشي اخستلې.

تشريح: په خلاف د رهن چې په دې كي د پوره مرهون شئ د هر يو د دين په بدله كي ګير وی. په دې وجه رهن صحيح دی. هم دا وجه ده. كه ده په دواړو كي د يو قرضه خلاصه كړله. نو په رهن كي هيڅ شئ واپس نشي اخستلې. تر كومه پورې چې دواړه پور ادا نكړی.

(وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ:) و جامع صغير كي دی. إِذَا تَصَدَّقَ عَلَى مُحْتَاجَيْنِ بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ أَوْ وَهَبَهَا لَهُمَا كه دوي (دوه) حتاجو ته ئې لس درهم صدقه يا هبه كړل. جَازَ، نو جائز دی. وَلَوْ تَصَدَّقَ بِهَا عَلَى غَنِيَّيْنِ أَوْ وَهَبَهَا لَهُمَا او كه دوي (دوه) مالدارو ته ئې هبه يا صدقه كړل. لَمْ يَجُزْ، نو جائز نه دی. وَقَالَا: و صاحبين رحمهما الله فرمائي. يَجُوزُ لِلْغَنِيَّيْنِ أَيْضًا) چې د غريبانانو لپاره هم جائز دی. جَعَلَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَجَازًا عَنِ الْآخَرِ، امام ابوحنيفه رحمه الله په هبه او صدقه كي هر يو د بل نه مجاز ګرځولې دې. وَالصَّلَاحِيَّةُ ثَابِتَةٌ، او صلاحيت ثابت دې. لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا تَمْلِيكٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ، كه په دوی كي هر يو تمليك دې. د عوض نه بغير،

تشريح: د جامع صغير او مبسوط روايت كي چونكه اختلاف واقع شوې دې. په دې وجه علامه مرغيناني رحمه الله د جامع صغير روايت ذكر كاوه سره ددې وضاحت كوی. جامع صغير كي دی. كه لس درهمه دوي (دوه) فقيرانو ته صدقه يا هبه كړل. نو صحيح ده. كه دوي (دوه) مالدارانو ته ئې هبه يا صدقه كړل. نو صحيح نه ده. دا خو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی. صاحبين رحمهما الله فرمائي. چه د مالدارانو لپاره هم صحيح ده. د امام



ابوحنيفه رحمه الله د قول حاصل دادې. چه دوی په هبه او صدقه كي هر يو د دوهم نه مجاز ګرځولې دې. يعنی كله چې فقير ته هبه كړې شو. نو دا مجازاً صدقه ده. او په صدقه كي تقسيمولو سره قبضه شرط نه ده. نو دوي (دوه) يا ددې نه زيات فقيرانو ته مشترك هبه جائز شوه. ځكه چې دا هبه د صدقة په معنی ده. او هركله چې غريبانانو ته مشترك صدقه وركړې شوه. نو دا جائز نه ده. ځكه چې دا صدقه په معنی د هبة ده.

وَفَرَّقَ بَيْنَ الصَّدَقَةِ وَالْهِبَةِ فِي الْحُكْمِ. او په جامع صغير كي ئې د هبه او صدقه په منځ كي فرق كړې دې. وَفِي الْأَصْلِ سَوَّى بَيْنَهُمَا او په مبسوط كي ئې برابر خودلی دی. فَقَالَ: وَكَذَلِكَ الصَّدَقَةُ لكه چې وئيلی ئې دی. چه هم دغه شان صدقه ده. لِأَنَّ الشُّيُوعَ مَانِعٌ فِي الْفَصْلَيْنِ لِتَوَقُّفِهِمَا عَلَى الْقَبْضِ. ځكه چې د شيوع كيدل دواړو كي مانع دی. ددوی دواړو په قبضه باندې د موقوف كيدلو په وجه، وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى هَذِهِ الرِّوَايَةِ او په روايت د جامع صغير باندې وجه د فرق داده. أَنَّ الصَّدَقَةَ يُرَادُ بِهَا وَجْهُ اللَّهِ تَعَالَى چې صدقې سره رضائي الهی مقصود ده. وَهُوَ وَاحِدٌ، او هغه يو ده. وَالْهِبَةُ يُرَادُ بِهَا وَجْهُ الْغَنِيِّ او هبه سره د غريب خوشحالی مقصود وی. وَهُمَا اثْنَانِ. او دا دوي (دوه) دی. وَقِيلَ هَذَا هُوَ الصَّحِيحُ، او وئيلی شوی دی. چه هم دا صحيح ده. وَالْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ فِي الْأَصْلِ الصَّدَقَةُ عَلَى غَنِيَّيْنِ او په مبسوط كي چې كوم ذكر دی. هغې نه په دوي (دوه) غريبانانو باندې صدقه كول مراد دی.

تشريح: او امام محمد رحمه الله په جامع صغير كي د هبة او صدقة په منځ كي حكم كي توپير كړې دې. او په مبسوط كي ئې دواړه يوشان خودلی دی. لكه د هبة مسئلې نه روسته ئې وئيلی دی. چه دغه ډول صدقه هم جائز ده. ځكه چې د اشتراك كيدل په هبه او صدقه دواړو كي مانع ددی. ځكه چې د دواړو پوره كيدل قبضه باندې موقوف دی. د جامع صغير په روايت باندې وجه د توپير داده. چه صدقة سره د الله تعالى رضا مقصود وی. او دا دوي (دوه) فقيرانو ته وركاوه كي هم واحد ده. او غريبانانو ته هبه كاوه كي ئې پخپله د دوی خوشحالی هم مقصود وی. او دا دوي (دوه) دی. د بعض مشائخو په قول د جامع صغير روايت صحيح دې. او په مبسوط كي چې كومه صدقه ذكر ده. د هغې نه غريبانانو باندې صدقه كول مراد دی. يعنی هبة ته مجازاً صدقه وئيلې شوی دی.

**په د وه سړوكښي ديو كس لپاره د كور دريمه برخه او دوهم لپاره دوي (دوه) حصې د هبه كولو**

وَلَوْ وَهَبَ لِرَجُلَيْنِ دَارًا كه يو كور ئې د دوي (دوه) كسانو لپاره هبه كړو. لِأَحَدِهِمَا ثُلُثَاهَا وَلِلْآخَرِ ثُلُثُهَا په دوی (دواړو) كي يو لپاره دوي (دوه) برخې (حصې) او د بل لپاره دريمه حصه. لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ. نو جائز نه ده. د شيخينو رحمهما الله په نيز. وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائي. يَجُوزُ. چې جائز ده. وَلَوْ قَالَ او كه ده اووئيل لِأَحَدِهِمَا نِصْفُهَا وَلِلْآخَرِ نِصْفُهَا چې يو لپاره نصف ده. او دوهم لپاره نصف ده. عَنْ أَبِي يُوسُفَ فِيهِ رِوَايَتَانِ. نو په دې كي د امام ابويوسف رحمه الله نه دوي (دوه) روايتونه دی. فَأَبُو حَنِيفَةَ مَرَّ عَلَى أَصْلِهِ، نو امام ابوحنيفه رحمه الله خو پخپلو اصولو باندې روان دې. وَكَذَا مُحَمَّدٌ. دغه شان امام محمد رحمه الله هم دې.

تشريح: دا مسئله د هبة دحصو تفصيل سره متعلق ده. ددې په اړه كي مخكې دا معلومول پكار دی. چه د هبة د تفصيل دوي (دوه) صورتونه دی. ① يا به ابتداءً وی. يعنی مخكې اجمالاً ذكر كولو نه بغير ② يا به د اجمال نه روسته وی. ړومبې صورت بلا خلاف ناجائز دې. كه تفصيل په طريقه د تفصيل وی لكه ثلث، او ثلثين، يا په طريقه د تساوی وی. لكه تنصيف، او په دوهم صورت كي د امام ابو حنيفه رحمه الله په نيز علی الاطلاق ناجائز دې. يعنی تفصيل متفاضلاً وی. او كه متساوياً وی. او د امام محمد رحمه الله په نيز علی الاطلاق جائز دې او امام ابويوسف رحمه الله په مفاضله او مساوات (په زيات او برابر) كي فرق كړې دې. نو د مفاضله په صورت كي ئې جائز نه دی وئيلې. او د مساوات په صورت كي ئې د يو روايت مطابق جائز وئيلی دی. چه دې طرف ته په ﴿عن ابي يوسف رحمه الله فيه روايتان﴾ سره اشاره ده.

هركله چې دا اصولی خبره مخې ته راغله. نو اوس په مسئله پوهه شئ: كه واهب دوي (دوه) سړو ته يو كور په

دي طريقه هبه كړو.چه يو لپاره دوي (دوه) برخي (حصي) او د دوهم لپاره دريمه برخه ده.نودا د شيخينو رحمهما الله په نيز جائز نه ده.اود امام محمد اوآئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز جائز ده.اوكه د دواړو لپاره ئې نصف نصف هبه كړو.نود امام محمد رحمه الله په نيز ناجائز اود امام محمد رحمه الله په نيز جائز ده.نودا حضرات پخپلو اصولو باندي قائم پاتي دي.اود امام ابويوسف رحمه الله موافق هم دا وو.چه جائز نه وي.خو ددوي نه په يو روايت كي دادي.چه جائز دي.

وَالْفَرْقُ لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ بِالتَّنْصِيصِ عَلَى الْأَبْعَاضِ يَظْهَرُ اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز وجه د فرق داده.چه د برخو صراحت كولو نه ښكاره شوه.أَنَّ قَصْدَهُ ثُبُوتُ الْمِلْكِ فِي الْبَعْضِ چې دده قصد په بعض كي ملك ثابتول دي.فَيَتَحَقَّقُ الشُّيُوعُ نو شيوع به متحقق كيږي.وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ په دي وجه جائز نه ده.إذَا رَهَنَ مِنْ رَجُلَيْنِ كه يو شئ ئې دوي (دوه) كسانو سره رهن كيخودلو.وَنَصَّ عَلَى الْأَبْعَاضِ او د برخو صراحت ئې اوكړو.

**تشريح:** وجه د فرق داده.چه د كور د برخو صراحت كولو سره دا ښكاره شوه.چه دده مقصد دادي.چه په برخو كي ملك ثابت وي.نو شيوع به متحقق كيږي.لكه مثلاً كه يو كس دوي (دوه) سړو سره يو شئ رهن كيخودلو.چه نصف دده سره رهن دي.او نصف د بل سره رهن دي.يا دوي (دوه) برخي (حصي) دي رهن كيږدي.او دريمه برخه بل كس رهن كيږدي.نودا د شيوع په وجه جائز نه ده.دغه شان هبه به هم جائز نه وي.او د جواز روايت وجه داده.كه بائع په دوي (دوه) اخستونكو كي د هر يو په لاس نصف نصف خرڅ كړي.يا كمي زياتي سره ئې خرڅ كړي.په دواړه صورتونو كي بيع جائز ده.نو هم دغه شان هبه هم جائز ده.

## باب ما يصح رجوعه وما لا يصح

ژباړه: (دا) باب د هغه (هبة په بيان كي) دي.په كومه كي چې رجوع كول صحيح ده.او په كومه كي صحيح نه ده.

**تشريح:** د هبة حكم دادي.چه موهوب له لپاره په شئ موهوب كي ملك غير لازم ثابتيږي.نو واهب لپاره رجوع كول، او موهوب شئ واپس اخستل جائز شو.(خو قضاءً، ديانةً مكروه ده.خو بعض موانع داسي دي.چه ددي په وجه رجوع نشي كولي.په دي باب كي د هغه موانعو تفصيل دي.بيا عنوان كي د هبة نه مراد موهوب دي.ځكه چې رجوع اعيان كي كيږي.اقوال كي نه كيږي.

### اجنبي ته هبه كولو كښي د رجوع بيان

قَالَ: (وَإِذَا وَهَبَ هِبَةً لِأَجْنَبِيٍّ كله ئې چې هبه كړو، څه شئ يو اجنبي ته، فَلَهُ الرُّجُوعُ فِيهَا) نو ده ته د هبه كي د رجوع اختيار شته.وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعي رحمه الله فرمائي.لَا رُجُوعَ فِيهَا چې هبه كي رجوع نشته دي.لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبي كريم ﷺ د ارشاد په وجه چه،، {لَا يَرْجِعُ الْوَاهِبُ فِي هِبَتِهِ إلَّا الْوَالِدُ فِيمَا يَهَبُ لِوَلَدِهِ}(١) رجوع دي نه كوي واهب پخپله هبه كي،،خو پلار په هغه شئ كي كوم چې خپل خوى ته هبه كړي.(رجوع نشي كولي).

**تشريح:** دځه شئ هبه كولو نه روسته واهب لپاره هغه ته د رجوع كولو،اود موهوب شئ واپس اخستلو حق شته دي.امام مالك رحمه الله او په ظاهر مذهب كي امام احمد رحمه الله هم ددي قائل دي.

د امام شافعي رحمه الله په نيز د رجوع حق نشته.سوا د پلار نه، كه هغه خپل اولاد ته څه شئ هبه كړي.نو واپس ئې اخستلي شي.ځكه چې امام نسائي ، او ابن ماجه رحمهما الله د،،عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده،، روايت كړي دي. «أن رسول الله ﷺ قال لا يرجع في هبة إلا الوالد من ولده» او اصحاب سنن اربعه، ابن حبان، حاكم، احمد

---

١)من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده رضي الله عنه أخرجه أبوداود في البيوع باب ٨١ رقم ٣٥٣٩ والترمذي في الولاء والهبة باب ٧ رقم ٢١٣٢ والنسائي في الهبة باب ٤ رقم ٣٤٦٤ وفي السنن الكبرى (٤\١٢١١) رقم ٦٥١٧) والبيهقي في السنن الكبرى (٦\٢٩٨) رقم ١٢٠١٦)_



رحمهم الله، طبراني ، او دارقطني د حضرت ابن عمر او ابن عباس رضي الله عنهم نه د نبي كريم ﷺ ارشاد روايت كړي دي. «لا يحل للرجل أن يعطي العطية فيرجع فيها إلا الوالد فيما يعطي لولده و مثل الذي يعطي العطية ثم يرجع فيها كمثل الكلب أكل حتى إذا شبع قاء ثم رجع في قيئه» ،، د هيڅ يو كس لپاره حلال نه دي.چه هغه يو كس ته هديه وركړي.بيا هغه واپس واخلي.دده مثال د هغه سپي پشان دي.چه څه اوخوري.او نس (خيټه) ډكه شي.او هغه قې كړي.او بيا دا قئ دوباره اوخوري،،

**قوله: لاجنبي** د اجنبي نه مراد هغه كس دي.چه ذي رحم محرم نه وي.نو هغه سړي اووتلو.كوم چې ذي رحم وي.او محرم نه وي.لكه د اكا (تره) او د ماما خوي، يا محرم وي.او ذو رحم نه وي.لكه رضاعي رور او خور.بيا دلته كي دوي (دوه) قيده ضروري دي.چه هبه ئې كړي.او وي سپاري.ځكه چې د سپارلو نه وړاندي رجوع نه وي.بلكه امتناع يعني د هبې نه منع كيدل وي.چه ددي په جواز كي هيڅ اختلاف نشته.دوهم دا چې د عقد هبه په حالت كي د رجوع په موانعو كي هيڅ مانع مقترن نه وي.

صاحب د عنايه رحمه الله ليكلي دي.چه لفظ،، وهب،،او ،، اجنبي ،، مذكر راوړلو سره زوجين ( ښځه خاوند) اووتل.خودا غلط دي.ځكه په دي مذكر ذكر كاوه سره مقصود مؤنث وي.نو په دي مسئلي سره هر هغه هبه اوځي.كوم چې دوي (دوه) ښځي يا د سړي او ښځي په منځ كي وي.صرف هغه هبه به پاته وي.كومه چې د سړو په منځ كي وي.حالانكه دا ښكاره فساد دي.نو مذكر ذكركول د مؤنث اوښكلو لپاره نه دي.بلكه په دي اعتبار سره دي.چه مذكر اغلب دي په مؤنث باندي،او د زوجينو وتل به په دوهم قيد سره وي.يعني «ولم يقترن لها ما يمنع الرجوع» ځكه چې زوجيت هم د رجوع د موانعو ځني دي.

وَلِأَنَّ الرُّجُوعَ يُضَادُّ التَّمْلِيكَ، او ځكه چې رجوع كول د تمليك ضد دي.وَالْعَقْدُ لَا يَقْتَضِي مَا يُضَادُّهُ، او عقد خپل ضد ته مقتضي نه وي.بِخِلَافِ هِبَةِ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ عَلَى أَصْلِهِ، په خلاف د پلار د هبة خپل خوى دپاره، ددوى (يعني د پلار) په اصل باندي.لِأَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ التَّمْلِيكُ، ځكه چې تمليك پوره نشو.لِكَوْنِهِ جُزْءًا لَهُ په دي وجه چې خوئي د پلار جزء دي.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله عقلي دليل دادي.چه رجوع كول د تمليك ضد دي.او عقد هبه تمليك وي.او عقد د خپل ضد تقاضا نه كوي.په خلاف د پلار، كله چې هغه خپل خوى ته څه هبه كړي.چه دا د امام شافعي رحمه الله په اصولو باندي هبه نه ده.ځكه چې تمليك پوره نه دي.ځكه چې زوي د خپل پلار جزء دي.د امام شافعي رحمه الله په نيز اصول دادي.چه د خوى په مال كي پلار لپاره حق ملك دي.ددي ځائې نه دوى پلار ته دي اجازت نه وركوي.چه د خپل خوى وينځي سره نكاح اوكړي.ځكه چې د خوى په وينځه كي د پلار حق ملك دي. «لقوله ﷺ أن أطيب ما يأكل الرجل من كسبه و ان ولده من كسبه» او ددوى ﷺ ارشاد دي. «أنت و مالك لأبيك» د حديث ظاهر نه حقيقي ملك راوځي.او امام شافعي رحمه الله حقيقي ملك نه ثابتوي.نو لږترلږ حق ملك به ضرور ثابتيږي.نو لكه څنګه چې مولا لپار، د خپل مكاتب وينځي سره نكاح كول جائز نه دي.دغه ډول پلار لپاره به هم د خپل خوى وينځي سره نكاح كول جائز نه وي.( كفايه)

### د احنافو رحمهم الله دليل

وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ زموږ دليل د نبي كريم ﷺ ارشاد دي. {الْوَاهِبُ أَحَقُّ بِهِبَتِهِ مَا لَمْ يُثَبْ مِنْهَا}(١) چې واهب د خپلي هبة زيات حقدار دي.تركومه پورې چې ددې د اړخه بدله نه وي وركړې شوې.

**تشريح:** په هبه كي د رجوع د جواز په مسئله كي د احنافو رحمهم الله دليلونه دادي. ① د ابوهريره رضي الله عنه حديث چې ددې تخريج ابن ماجه، دارقطني او ابن شيبه كړي دي. «قال رسول الله ﷺ الرجل أحق بهبته مالم يثب منها» ،، نبي كريم ﷺ ارشاد فرمائيلي دي.چه واهب د موهوب شئ زيات حقدار دي.تركومه پورې چې هغه ته ددي عوض نه وي ملاؤ شوي،، دا ابن حزم داسې معلول كړي دي.چه ددې راوى ابراهيم بن اسماعيل بن مجمع بن جاريه ضعيف

---

١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه ابن ماجه في الأحكام رقم ٢٣٨٧)_

دي.او عمرو بن دينار ته د حضرت ابوهريره ﷺ نه سماع حاصل نه ده.
جواب*دادي.چه امام بخاري رحمه الله د ابراهيم نه تعليقاً روايت كړي دي.ابن عدى وائي.چه د ضعيف كيدلو باوجود دده حديث ليكلې شى.شيخ ابو حاتم هم داسې وئيلى دى.اود عمرو بن دينار مراسيل صحاح او مقبول دى. ② د ابن عباس رضى الله عنهما حديث، چې دا په دوې (دوه) طريقو سره روايت كړې شوې دې.د يو طريق تخريج حافظ طبرانى په معجم كي او دوهم طريق دار قطنى په سنن كي كړې دې. «قال رسول الله ﷺ من وهب هبة فهو احق بهبة ما لم يثب منها فإن رجع في هبة فهو كالذى يقيئ ثم يأكل قيئه» طريق د طبرانى ته د ابن ابى ليلى په وجه، او طريق د دارقطنى ته د ابراهيم بن ابى يحى اسلمى او د محمد بن عبيد الله عزرمى په وجه معلول وئيلى شوى دى.
جواب*دادي.كه حديث فى نفسه د حجت كيدلو قابل نه وى.نو شاهد ضرور كيداې شى.او ابن ابى ليلى احسن الحديث هم دي.
③ حديث د ابن عمر ﷺ، چې ددې تخريج حاكم په مستدرك كي ، دارقطنى په سنن كي ،بيهقى په كتاب للعرفه كي كړې دې. «أن النبى ﷺ قال ومن وهب هبة فهو احق بها ما لم يثب منها» حافظ بيهقى فرمائى.چه ددې په رفع كي عبد الله بن موسى ته وهم شوې دې.او محفوظ روايت د عبد الله بن وهب دې.چه دا په حضرت ابن عمر رضى الله عنهما باندې موقوف دې.
جواب*دادي.چه حاكم دا حديث په شرط د شيخينو صحيح منلې دې.شيخ عبد الحق په الاحكام كي وئيلى دى.چه ددې رواة ثقه دى.ابن حزم رحمه الله هم ددې تصحيح كړې ده.بيا د احمد بن حازم بن ابى عزره متابع على بن سهل بن المغيره هم موجود دې.(عند البيهقى) صاحب د جوهر نقى فرمائى.چه د بيهقى دا وئيل.هم غلط دى.چه په دې كي عبد الله به موسى ته وهم شوې دې.بلكه دا ئې په دې باندې محمول كړې دې.چه عبد الله سره ددې حديث دوې (دوه) سندونه دى.
❀سوال*ممكن ده چې حديث كي واهب لپاره د احق كيدلو حكم د موهوب شئ سپارلو نه مخكي وى.نو حديث سره حجت نه قائميږى ؟
جواب*دا احتمال صحيح نه دې.ځكه چې اول خو دلته كي مال باندې د هبة لفظ وئيلې شوې دې.اود قبض او تسليم نه وړاندې دا هبه نه ده. دوهم دا چې واهب ته احق (زيات حقدار) وئيلى شوى دى.معلومه شوه.چه په دې كي د بل حق هم دې.او ښكاره ده.چه د بل حق به د قبضې نه روسته وى.
④ حديث د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما چې ددې تخريج امام ابوداؤد، نسائى ، اوابن ماجه رحمهم الله كړې دې. «عن رسول الله ﷺ قال مثل الذى يسترد ما وهب كمثل الكلب يقيء فيأكل قيئه فإذا إسترد الواهب فليوقف فليعرف بما إسترد ثم ليدفع إليه ما وهب»، نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې.چه څوك څه وركړى.او واپس ئې اخلى.د هغه مثال د سپى پشان دې.چه قې اوكړى.او بيا ئې اوخورى.نو كوم سړې چې هبه اوكړى.او واپس اخستل اوغواړى.نو موهوب له، له د واپس كولو د سبب پوښتنه كول پكار دى.كه بدله نه ملاويدل سبب وى.نو بدله دې وركړى.كله چې معلومه شى.بيا دې هغه وخت واپس كړى ،، په دې حديث كي صريحى دلالت دې.چه واهب لپاره د واپس اخستلو حق شته.گنى موهوب له ته به د واپس وركولو حكم نشو كولې.
❀ابن حزم دا د اسامه بن زيد راوى په وجه معلول كړې دې.خودا خكه صحيح نه ده.چه اسامه بن زيد ضعيف نه دې.بلكه صدوق دې.اود صحيح مسلم، او د سنن اربعه د رجال (راويانو) څنې دې.امام بخارى رحمه الله ددوى نه تعليقاً روايت اخستې دې.
❀سوال*امام طحاوى رحمه الله په معانى الآثار كي د حضرت ابوالدرداء ﷺ نه روايت كړې دې. «من وهب من غير ان يستوهب فهى كسبيل الصدقة فليس له أن يرجع فى صدقته» حالانكه امام ابوحنيفه رحمه الله ددې قائل نه دې؟
جواب*ددې حديث په سند كي راشد بن سعد دې.چه دده په اړه كي حافظ ابن حجر رحمه الله په تهذيب كي وئيلى دى.چه د ابوالدرداء ﷺ نه دده روايت كول محل نظر دى.او په دې حديث كي چې كوم استيهاب (د هبه



درخواست كول) راغلې دې.دا په اراده د ثواب باندې محمول دې.په شرط عوض باندې محمول نه دې. «لكان هذا لى معنى حديث عمر ﷺ»

أي مَا لَمْ يُعَوَّضْ، يعنى عوض ئې نه وى حاصل كړې.

تشريح: دا لفظ د حديث جزء نه دې.بلكه د علامه مرغينانى رحمه الله د اړخه د،، مالم يثبت منها،، تفسير دې.لفظ د،،لم ثيب ، اثابة،، په معنى د تعويض( عوض وركولو) نه د مجهول صيغه ده.او دا په اصل كي د،،ثوب،،(په معنى د رجوع ) نه مشتق ده.،يقال ثاب (ن) ثوبا،، په معنى د واپس كيدلو.او،،اثاب، اثابة،، په معنى د بدله وركولو.

وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ بِالْعَقْدِ هُوَ التَّعْوِيضُ لِلْعَادَةِ، او ځكه چې د عقدهبه نه مقصود عوض اخستل وى.د عادت د امله. فَتَثْبُتُ لَهُ وِلَايَةُ الْفَسْخِ عِنْدَ فَوَاتِهِ، نو ثابتيږى به د فسخ ولايت دده د فوت كيدلو په وخت. إِذِ الْعَقْدُ يَقْبَلُهُ، ځكه چې دا عقد فسخ قبلوى.

تشريح: دا زموږ عقلى دليل دې.چه په عرف عام كي د هبة نه مقصود هم دا وى.چه ددې عوض ملاؤ شى.لكه چې سړې د خپل خان نه اوچتې مرتبې والا ته هديه ځكه وركوى.چه د هغه د اوچتې مرتبې او د رعب په ذريعه خپل خان محفوظ اوساتى.اود خپل خان نه كم تر ته ئې ځكه وركوى.چه هغه دده خدمت اوكړى.او د ارتيا په وخت پكار راشى.او خپل برابر ته ئې ځكه وركوى.چه ددې مالى عوض ملاؤ شى.په دې وجه وئيلى شى.،، الايادى مقروض،،( هديې پور وى ) نو هركله چې واهب ته د هبة عوض ملاؤ نشو.نو هغه ته به د فسخ اختيار وى.ځكه چې دې عقد كي د فسخ كيدلو صلاحيت شته دې.
❀اعتراض*په دې دليل باندې صاحب د تشريح دا اعتراض كړې دې.كه په هبه كي د عوض نه كيدلو قيد وى.نود مذكوره تعليل په موجب رجوع ممتنع كيدل پكار دى.ځكه چې د عوض د نفى قيد سره دا ښكاره شوه.چه عوض مقصود نه دې.حالانكه د حديث الفاظ «ما لم يثب منها» په دې باندې دلالت كوى.چه رجوع جائز ده.اگرچه د عوض د نفى قيد وى ؟
خواب*دادې.چه ① اول خود مذكوره قيد په وخت دعوض مقصود نه كيدل صحيح نه دى.ځكه چې د موهوب له عوض وركول، د واهب په ايجاب او نفى كاوه باندې نه ده.بلكه دا د موهوب له د مروت (او د اخلاقو) په لحاظ سره دې.اود واهب په نفى كاوه سره دا مقصد نه فوت كيږى. ② دويمه دا كه اومنو.نو بيا هم مذكوره تعليل د حكم د نوع د اثبات لپاره يو علت نوعيه دې.چه ددې لپاره هرصورت كي مطرد (ردكول) كيدل ضرورى نه دى.

وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ او مراد د هغه حديث نه كوم چې امام شافعى رحمه الله روايت كړې دې. نَفْيُ اسْتِبْدَادِ الرُّجُوعِ وَإِثْبَاتُهُ لِلْوَالِدِ رجوع د استقلال نفى كول، او پلار لپاره دا ثابتول دى.چه پلار د ضرورت په وخت ددې مالك كيږى. لِأَنَّهُ يَتَمَلَّكُهُ لِلْحَاجَةِ وَذَلِكَ يُسَمَّى رُجُوعًا. او دې ته هم رجوع وائى

تشريح: د امام شافعى رحمه الله د مستدل خواب دې.چه «لا يرجع فى هبته» كي رجوع نه مراد دادې.چه ده ته صرف پخپله مرضئ د رجوع كاوه اختيار نه وى.بلكه د قاضى د فيصلې يا خپل منځ كي رضامندى ضرورى ده.البته پلار ته دا اختيار وى.ځكه چې هغه د خپل ارتيا په وخت د خوى د مال مالك كيږى.او مجازاً دې ته هم رجوع وائى.لكه څنگه چې امام بخارى رحمه الله د حضرت عمر ﷺ نه روايت كړې دې. «أنه قال حملت على فرس فى سبيل الله فرأيته يباع فسألت رسول الله ﷺ فقال لا تشتر و لا تعد فى صدقتك»،، حضرت عمر ﷺ فرمائى.چه ما د الله تعالى په لاره كي يو كس ته سوارلئ لپاره اس وركړو.بيا ما اوكتل.چه هغه خرڅيږى.ما د نبى كريم ﷺ نه پوښتنه اوكړه.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.دا ما اخله.او پخپله صدقه كي مه واپس كيږه،، حالانكه اخستل په حقيقت كي رجوع نه ده.

او د دوهم حدیث «لا یحل للرجل» خواب دادې چه عدم حلت نه حرمت ته مستلزم دې او نه بطلان ته مستلزم دې.ځکه چې حلت کله کله کامل وی.او هغه دادې چه په دې کې نه حرمت وی.او نه کراهت وی.او کله کله ناقص وی.چه په دې کې کراهت موجود وی.او په حدیث کې د حل کامل نفی ده.د حل مطلق نفی نه ده.چه دا کراهت ته هم شاملیږی.او د رجوع د کراهت موږ هم قائل یو.

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ فَلَهُ الرُّجُوعُ او په کتاب کې دا وئیل،چه ده ته د رجوع اختیار دې.لِبَيَانِ الْحُكْمِ،دا د حکم بیانولو لپاره دی.أَمَّا الْكَرَاهَةُ باقې شو کراهت، فَلَازِمَةٌ لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نو دا لازمې دې.د نبی کریم ﷺ د ارشاد په وجه، {الْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ كَالْعَائِدِ فِي قَيْئِهِ}(۱) چې خپله هبه کې رجوع کونکې داسې دې.لکه پخپل قی کې رجوع کونکې، وَهَذَا لِاسْتِقْبَاحِهِ اودا ددې قبیح کیدل ښکاره کولو لپاره دی.

تشریح: یعنی په کتاب کې ئې چې دا اوفرمائیل.چه واهب ته درجوع کاوه اختیار دې.دا د دنیاوی حکم بیان دې.باقې شو کراهت،نودا به لازمی وی.نو د دیانت په طور رجوع کول مکروه تحریمی دی.ځکه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. «العائد فی هبة کالعائد فی قیئه» (الجماعة الا الترمذی عن ابن عباس رض)

## هغه امور کوم چې رجوع لپاره مانع دی؟

ثُمَّ لِلرُّجُوعِ مَوَانِعُ بیا د رجوع لپاره څه موانع دی. ذَكَرَ بَعْضَهَا چې د هغې نه ئې بعض ذکرکړی دی. فَقَالَ نو فرمائی،

تشریح: په هبه کې د رجوع کولو نه اووه امور مانع جوړیږی.چه دا صاحب د کنز په مجموعه (دمع خزقه) حروفو سره ښکاره کړی دی.او دا مجموع د شاعر ددې شعر نه اخستې شوې ده.~

و مانع عن الرجوع فی الهبة ◉ یا صاحبی حروف،، دمع خزقه،،

ددې مجموعې معنی داده.چه،،اوښکو زخمی کړلو،، خزق په معنی د طعن دې.نو شاعر د اوښکې نیزې سره تشبیه ورکړې ده. »

په مبسوط خواهرزاده کې نهه موانع ذکر دی.ځکه چې مرګ دوې (دوه) صورتونه داخل دی.یو د واهب مرګ، اویو د موهوب له مرګ.او نهم مانع د یو جنس بل جنس طرف ته تبدیلول دی.

(إِلَّا أَنْ يُعَوِّضَهُ عَنْهَا) مګر دا چې د هغې عوض ئې ورکړې وی. لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ مقصود دحصول په وجه،

تشریح: اول مانع: د مجموعې د حرفو ،،عین،، نه مراد عوض دې.کوم چې د هبې په بدله کې موهوب له واهب ته ورکړی.چه اوس واهب رجوع نشی کولې.ځکه چې مقصود حاصل شو.خو شرط دادې.چه هغه ددې اضافت هبهٔ ارخ ته اوکړی.مثلاً موهوب له واهب ته اووائی.چه دا شئ د خپلې هبهٔ عوض یا دهغې بدله یا دهغې په مقابله کې واخله.او واهب په دې باندې قبضه اوکړی.نو حق د رجوع به ساقطیږی.دغه ډول که څوک اجنبی سړې د موهوب له د ارخه د واهب د هبهٔ عوض ورکړی.بیا هم حق درجوع ساقطیږی.

(أَوْ يَزِيدَ زِيَادَةً مُتَّصِلَةً) یا موهوب کې څه زیاتوالې متصل شوې وی. لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى الرُّجُوعِ فِيهَا دُونَ الزِّيَادَةِ لِعَدَمِ الْإِمْكَانِ ځکه چې زیاتوالی نه بغیر موهوب کې درجوع هیڅ وجه نشته.د ممکن نه کیدلو په وجه، وَلَا مَعَ الزِّيَادَةِ نه سره د زیاتوالی، لِعَدَمِ دُخُولِهَا تَحْتَ الْعَقْدِ. ځکه چې دا زیاتوالې دعقد لاندې داخل نه دې.

تشریح: دوهم مانع: په ذکرشوې مجموع کې د حرفو ،،دال،، نه په نفس موهوب څیزکې زیاتوالی ارخ ته اشاره ده.که په عین موهوب کې څه داسې زیاتوالې متصل شو.چه هغې سره ددې قیمت زیات شو.مثلاً موهوب مځکه وه.موهوب له په دې کې عمارت جوړ کړو.یا ئې ونې اولګولې.یا موهوب له دې ته خوراك څکاك (

(۱) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه الجماعة إلا الترمذی (نصب الرایة ۱۴\۳۰۶)_



یعنی خره ،،یوریا، ډیران وغیره او اوبه....) ورکړې.او ښه ئې تیاره (طاقتوره) کړله نو په دې صورت کې واهب رجوع نشی کولې.ځکه که هغه د زیاتوالی نه بغیر رجوع کول اوغواړی نودا ممکن نه ده.ځکه چې تیاروالې (او طاقت) لرې کول دده د وس خبره نه ده.اوکه سره د زیاتوالی رجوع کول غواړی.نودا هم نشی کیدې.ځکه چې زیاتوالې په عقد هبه کې داخل نه دې.

قَالَ: (أَوْ يَمُوتَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ) ایا متعاقدینو کې یوکس مړشی. لِأَنَّ بِمَوْتِ الْمَوْهُوبِ لَهُ يَنْتَقِلُ الْمِلْكُ إِلَى الْوَرَثَةِ ځکه چې د موهوب له په مرګ سره ملك وارثانو ارخ ته منتقل شو. فَصَارَ كَمَا إِذَا انْتَقَلَ فِي حَالِ حَيَاتِهِ نو داسې شوه.لکه چې دده په ژوند کې منتقل شوې وې. وَإِذَا مَاتَ الْوَاهِبُ او کله چې واهب مړشو. فَوَارِثُهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْعَقْدِ نو دده وارث د عقد هبه نه اجنبی دې. إِذْ هُوَ مَا أَوْجَبَهُ. ځکه چې ده عقد نه وو کړې

تشریح: دریم مانع: په ذکرشوې مجموعه کې د حرف میم نه د احد المتعاقدین یعنی د واهب یا د موهوب له مرګ ارخ ته اشاره ده.چه د مرګ په صورت کې هم رجوع جائز نه ده.ځکه که موهوب له مړشو.نو ملك دده وارثانو ارخ ته منتقل شو.نو لکه څنګه چې دده په ژوند کې د ملك منتقل کیدلو نه روسته رجوع جائز نه ده.دغه ډول به د مرګ نه روسته هم د ملك د انتقال په صورت کې رجوع جائز نه وی.او که واهب مړشو.نو دده وارثان د عقد هبه په لحاظ سره خالص اجنبی دی.کوم شئ چې مرګ سره ساقطیږی.هغه صاحب د تنویر په دې قطعه کې راجمع کړی دی.~

کفارة دیة خراج و رابع ◉ ضمان لعتق هکذا نفقات
کذا هبة حکم الجمیع سقوطها ◉ بموت لما أن الجمع صلات

قَالَ (أَوْ تَخْرُجَ الْهِبَةُ عَنْ مِلْكِ الْمَوْهُوبِ لَهُ) ویا هبه د موهوب له د ملك نه اوځی. لِأَنَّهُ حَصَلَ بِتَسْلِيطِهِ ځکه چې دا د واهب مسلط کاوه سره اوشو. فَلَا يَنْقُضُهُ نو هغه دا نشی ماتولې. وَلِأَنَّهُ تَجَدَّدَ الْمِلْكُ بِتَجَدُّدِ سَبَبِهِ. او ځکه چې د سبب جدید کیدلو سره ملك هم جدید کیږی.

تشریح: څلورم مانع: په مجموع کې دحرف، ،خاء،، نه مراد، موهوب د موهوب له د ملك نه خارجول دی.مثلاً موهوب له دا خرڅ کړی.یا ئې بل چاته هبه کړی.نو واهب رجوع نشی کولې.ځکه چې داسې کول د واهب په مسلط کاوه سره شوی دی.نو واهب دا نشی ماتولې.او د ملك جدید سبب پیدا کیدلو سره ملك هم جدید کیږی.مثلاً موهوب له چې کله موهوب خرڅ کړو.نود بیع په وجه مشتری ته ملك جدید حاصل شو.نو واهب هغه نشی ماتولې.

قَالَ: (فَإِنْ وَهَبَ لِآخَرَ أَرْضًا بَيْضَاءَ) که یوکس بل چا ته خالی مځکه هبه کړله. (فَأَنْبَتَ فِي نَاحِيَةٍ مِنْهَا نَخْلًا) نو موهوب له ددې غاړو ته د کجورو ونې اولګولې. (أَوْ بَنَى بَيْتًا) یا ئې کور جوړ کړو. (أَوْ دُكَّانًا) یا ئې دوکان جوړ کړو. (أَوْ آرِيًّا) یا د څاروو بار جوړ کړو. (وَكَانَ ذَلِكَ زِيَادَةً فِيهَا) و حال داچه دا په مځکه کې زیاتوالې دې. (فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِي شَيْءٍ مِنْهَا) نو ددې په هیڅ برخه کې رجوع نشی کولې. لِأَنَّ هَذِهِ زِيَادَةٌ مُتَّصِلَةٌ. ځکه چې دا زیاتوالې متصل دې.

تشریح: که یوکس بل چا ته خالی مځکه د کروندې قابله هبه کړله.او موهب له د هغې په یوه غاړه ونې اولګولې.یا ئې کور، دوکان، د څاروو بار وغیره جوړ کړو.په داسې حال کې چې دا واړه په دې مځکه کې زیاتوالې وی.نو واهب ددې زمکې هیڅ یوه برخه واپس نشی اخستلې.ځکه چې ذکر شوی امور دې زمکې سره متصله (مولښتی) زیاتوالې دې.

وَقَوْلُهُ وَكَانَ ذَلِكَ زِيَادَةً فِيهَا او په کتاب کې دا وئیل چه،،دا په مځکه کې زیاتوالې دې،،دې ارخ ته اشاره ده. لِأَنَّ الدُّكَّانَ قَدْ يَكُونُ صَغِيرًا حَقِيرًا چې دوکان کله کله داسې وړوکې حقیر (بې قیمته) وی. لَا يُعَدُّ زِيَادَةً

أَصْلًا، چې دا هیڅ زیاتوالې نه شمارلې کیږی. وَقَدْ تَكُونُ الْأَرْضُ عَظِيمَةً يُعَدُّ ذٰلِكَ زِيَادَةً فِي قِطْعَةٍ مِنْهَا او کله کله مځکه داسې وسیع (او فراخه) وی، چه دا زیاتوالې ددې په یوه ټکړه کې شمارلې کیږی. فَلَا يَمْتَنِعُ الرُّجُوعُ فِي غَيْرِهَا نو پاته کې به رجوع ممتنع نه وی.

**تشریح:** یعنی په کتاب کې چې دا قید لګیدلې دې. «وكان ذالك زيادة فيها» په دې کې دې خبرې طرف ته اشاره ده، چه دا زیاتوالې په عرف کې شمارلې کیږی. ځکه چې کله کله دوکان دومره معمولی او وړوکې وی، چه دا هیڅ زیادت نه شمارلې کیږی. اوکله کله مځکه دومره وسیع (او فراخه) وی، چه دا زیاتوالې ددې په یوه ټکړه کې شمارلې کیږی. نو په پاته مځکه کې به رجوع ممتنع نه وی. بیا که موهوب له دغه ونې اوباسی، یاکور، دوکان، اود خاروو خانې وغیره وران کړی، او مځکه د مخکې پشان شی. نو بیا به واهب ته د واپس اخستلو اختیار وی. ځکه چې د کوم زیادت په وجه واپس اخستل ممتنع شوی وو. هغه زیادت (مانع) ختم شو.

قَالَ: (فَإِنْ بَاعَ نِصْفَهَا غَيْرَ مَقْسُومٍ) که موهوب له نصف مځکه غیر مقسوم خرڅه کړله. (رَجَعَ فِي الْبَاقِي) نو واهب به پاته مځکه کې رجوع کولې شی. لِأَنَّ الْاِمْتِنَاعَ بِقَدْرِ الْمَانِعِ ځکه چې ممتنع کیدل په اندازه د مانع دی. (وَإِنْ لَمْ يَبِعْ شَيْئًا مِنْهَا) وکه هیڅ مځکه ئې نه ده خرڅه کړې. (لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِي نِصْفِهَا) نو په نیمه کې رجوع کولې شی. لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ فِي كُلِّهَا ځکه چې هرکله ده ته د کل راګرځولو اختیار دې. فَكَذَا فِي نِصْفِهَا بِالطَّرِيقِ الْأَوْلٰى نو د نیم راګرځول به په طریقه اولی جائز وی.

**تشریح:** که موهوب له نصف موهوب غیر مقسوم خرڅ کړو. نو واهب په نصف پاته کې رجوع کولې شی. ځکه چې د رجوع ممتنع کیدل به په دومره قدرې برخه کې پاتې وی. کومه پورې چې مانع موجود وی. اوکه موهوب له موهوبه زمکې نه هیڅ هم خرڅه نکړله. نو واهب ته اختیار شته. چه صرف نیمه مځکه واپس واخلی. ځکه چې هرکله ده ته د کل موهوب اخستلو اختیار دې نو د نصف هبه واپس اخستلو اختیار به په طریقه اولی وی. بیا په کتاب کې د غیر مقسوم قید احترازی نه دې. ځکه چې د نصف مقسوم په خرڅولو کې هم دا حکم دې.

## ذی رحم محرم ته د هبه کولو نه روسته د رجوع حکم

قَالَ (وَإِنْ وَهَبَ هِبَةً لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ) وکه خپل ذی رحم محرم ته ئې (څه څیز) هبه کړو. (فَلَا رُجُوعَ فِيهَا) نو په دې کې رجوع نشی کولې. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. {إِذَا كَانَتِ الْهِبَةُ لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ چې کله هبه د ذی رحم محرم لپاره وی، لَمْ يَرْجِعْ فِيهَا}[1] نو په دې کې رجوع نشی کولې، وَلِأَنَّ الْمَقْصُودَ فِيهَا صِلَةُ الرَّحِمِ او ځکه چې مقصود صله رحمی ده. وَقَدْ حَصَلَ اودا حاصله شوه.

**تشریح:** پنځم مانع: په ذکرشوې مجموعه کې د حرف ،،قاف،، نه مراد قرابت محرمیت دې. یعنی داسې قرابت (رشته داری) چې په دې سره نکاح حرامیږی. نو که خپل یو ذی رحم محرم ته ئې څه شی هبه کړو. نو په دې کې رجوع نشی کولې. ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی. ځکه چې حاکم، بیهقی، او دارقطنی رحمهم الله د حضرت سمره بند جندب رضی الله عنه نه مرفوعاً روایت کړې دې. چه «إذا كانت الهبة لذى رحم محرم لم يرجع فيها» او په دې وجه هم (رجوع نشی کولې) چې د هبه نه مقصود صله رحمی وه. چه دا حاصله شوه. اود کوم عقد مقصد چې حاصل شی. د هغې فسخ جائز نه وی.

**فائده:** د سمره رضی الله عنه حدیث ابن الجوزی رحمه الله په ،،التحقیق،، کې د عبدالله بن جعفر په وجه معلول کړې دې. او وئیلی ئې دی. چه دا ضعیف دې. خو صاحب د تنقیح د ابن الجوزی رحمه الله خطائی ښکاره کړې ده. او وئیلی ئې

[1] من حديث سمرة بن جندب رضی الله عنه أخرجه الحاكم فى المستدرك (٥٢\٢) والدارقطنى فى سننه (٤٤\٣) والبيهقى فى السنن الكبرى (٣٠٠\٦) رقم ١٢٠٢٦)_



دی. چه دا غلطه ده. بلکه عبدالله بن جعفر د صحیحینو د رجالو (راویانو) څخه ثقه راوی دې. او ددې حدیث واړه راویان ثقات دی. اودا عبدالله بن جعفر رقی دې. ضعیف خو د علی بن المدینی پلار عبدالله بن جعفر مدینی دې. کوم چې د رقی نه وړاندې تیر شوی دې. په دې وجه حاکم دا حدیث د بخاری په شرط باندې صحیح منلې دې. او حافظ ذهبی په تلخیص کې هم دا برقرار ساتلې دې. او په التلخیص الجبیر کې حافظ ابن حجر رحمه الله هم سکوت کړې دې. په دې مقام بعض سوالونه ذهن ته راځی. چه هغه لاندې ذکردی.

سوال: دارقطنی وئیلی دی. چه ددې په روایت کې عبدالله بن جعفر متفرد دې. او صاحب د تنقیح دې حدیث ته منکر وئیلی دی؟

جواب: د تفرد په وجه څوك نه ضعیف کیږی. اود منکر کیدلو وجه هم هیڅ وجه نه ده. ځکه چې عبدالله بن جعفر د زیاتو ثقه راویانو نه مخالف نه دې. ځکه چې هبه طرف ته د رجوع نه جائز کیدل دیانت سره متعلق دی. نو که رجوع ئې اوکړله. نو حکم به ثابت وی. اګرچه دده مثال دهغه سپی پشان دې. کوم چې پخپل قی کې رجوع کوی.

سوال: حافظ بیهقی فرمائی. چه دا حدیث حضرت حسن بصری رحمه الله د حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه نه روایت کړې دې. حالانکه ده کې اعتراض دې. چه دوی سمره رضی الله عنه موندلې دې او که نه دې؟

جواب: د جمهورو په نیز ددوی سماع ثابت ده. تردې چې امام بخاری رحمه الله حدیث د ،،حسن عن سمره رضی الله عنه،، حجت ګڼړلې دې. لکه څنګه چې پخپله بیهقی په بیوع سنن کې ددې صراحت کړې دې. نو په بیهقی تعجب دې. چه کوم حدیث په کوم سند سره دده موافق وی. نو هغه حجت ګرځوی. او کله چې هم په دغه سند سره کوم حدیث مخالف وی. نو هغې ته ضعیف وائی. والله اعلم.

(وَكَذٰلِكَ مَا وَهَبَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ لِلْآخَرِ) دغه ډول هغه (هبه) ده. کوم چې زوجینو (ښځه او خاوند) کې یوکس بل ته هبه کړې وی. لِأَنَّ الْمَقْصُودَ فِيهَا الصِّلَةُ ځکه چې ددې مقصد هم دغه صله (رحمی) ده. كَمَا فِي الْقَرَابَةِ لکه څنګه چې قرابت کې کیږی. وَإِنَّمَا يُنْظَرُ إِلٰى هٰذَا الْمَقْصُودِ وَقْتَ الْعَقْدِ بیا به دا مقصود هغه وخت کتلې شی. کوم وخت چې عقد هبه شوې وی. حَتّٰى لَوْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ مَا وَهَبَ لَهَا تردې که د ښځې سره ئې نکاح اوکړله. ددې نه روسته چې هغې ته ئې هبه کړې وه. فَلَهُ الرُّجُوعُ نو هغې اړخ ته به د رجوع اختیار وی. وَلَوْ أَبَانَهَا بَعْدَ مَا وَهَبَ اوکه د هبه کاوه نه روسته ئې ښځه بائنه کړله. فَلَا رُجُوعَ نو رجوع نشی کولې.

**شپږم مانع:** په ذکرشوې مجموعه کې د حرف ،،زاء،، نه مراد د هبه په وخت د واهب او موهوب له په منځ کې د زوجیت علاقه کیدل دی. که یوکس یوې اجنبیه (پردۍ) ښځې ته څه شی هبه کړو. بیا هم هغې سره نکاح اوکړله. نو رجوع کولې شی. ځکه چې د هبه په وخت زوجیت (نکاح) نه وو. اوکه ښځې ته ئې څه شی هبه کړو. بیا ئې هغه جلا (بائنه) کړله. نو رجوع نشی کولې. ځکه چې ددې هبه مقصد صله رحمی وه. او دا خبره هبه کاوه سره حاصله شوې ده. ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.

⑦ په ذکرشوې مجموعه کې د حرف ،،هاء،، نه مراد د موهوب څیز، یا ددې د عامو منافعو هلاکیدل دی. چه د هلاکیدلو په صورت کې هم واهب رجوع نشی کولې. اود موهوب د هلاکت په سلسله کې به د موهوب له قول معتبر وی. یعنی که دوی دا دعوه اوکړی. چه هغه ضائع شو. نو د هغه تصدیق به کولې شی. او په موهوب له یا واهب کې د یو کس په مرګ سره هم رجوع ساقطیږی.

## د موهوب له د اړخه د بل څه عوض ورکولو مسئله

قَالَ: (وَإِذَا قَالَ الْمَوْهُوبُ لَهُ لِلْوَاهِبِ) کله چې موهوب له واهب ته اووئیل. (خُذْ هٰذَا عِوَضًا عَنْ هِبَتِكَ) چې دا خپلې هبه عوض واخله، (أَوْ بَدَلًا عَنْهَا أَوْ فِي مُقَابَلَتِهَا) یا د هغې بدله، یا د هغې په مقابله کې، (فَقَبَضَهُ الْوَاهِبُ) و واهب په دې باندې قبضه اوکړله. (سَقَطَ الرُّجُوعُ) نو حق د رجوع ساقط شو. لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ د مقصود د حصول په

وجه، وَهٰذِهِ الْعِبَارَاتُ تُؤَدِّي مَعْنًى وَاحِدًا اودا واړه عبارتونه يوه معنى اداكوي.

تشريح: موهوب له واهب ته د هغه د هبه عوض وركولو كي داسي لفظ ذكر كړو. چي د هغي نه واهب په دي پوهه شي.چه دا دده د هبه عوض دي.مثلاً موهوب له هغه ته آووئيل. «خذ هذا عوضاً عن هبتك» يا ئي اووئيل. «جزاء هبتك» يا ني اووئيل. «بدل هبتك» ياني اووئيل. «خذ هذا عوضاً لي مقابلة هبتك» او واهب په دي باندي قبضه اوكړله.نو حق د رجوع به ساقطيږي. كه دا عوض كم وي.اوكه زيات وي.د هبه جنس څني وي.او كه خلاف جنس څني وي.ځكه چي دا معاوضه محضه نه ده. نو په دي كي به كمي زياتي سره سود نه متحقق كيږي.البته په عوض كي به د هبه د شرطونو (يعني د قبض او جدا كولو وغيره) لحاظ به ضرور ساتلي كيږي.

(وَإِنْ عَوَّضَهُ أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْمَوْهُوبِ لَهُ مُتَبَرِّعًا) وكه ددي عوض يو اجنبي د موهوب له د اړخه د سلوك (او احسان) په طور وركړو. (فَقَبَضَ الْوَاهِبُ الْعِوَضَ) و واهب عوض واخستلو. (بَطَلَ الرُّجُوعُ) نو حق د رجوع ساقط شو. لِأَنَّ الْعِوَضَ لِإِسْقَاطِ الْحَقِّ ځكه چي عوض خو د حق د اسقاط لپاره وي. فَيَصِحُّ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ نودا به د اجنبي داړخه هم صحيح وي. كَبَدَلِ الْخُلْعِ وَالصُّلْحِ: لكه د خلع او صلح عوض.

تشريح: د رجوع د حق ساقطيدلو وجه داده.چه د واهب مقصد كوم چي عوض حاصلول وو.هغه حاصل شو .ذكر شوي واړه الفاظ په مكافات باندي دلالت كوي.نود رجوع حق به ساقطيږي.البته كه واهب ته دا معلومه نشي.چه دا زما دهبه عوض دي.نو واهب ته پخپله هبه كي او موهوب له ته به پخپل عوض كي د رجوع اختيار وي.اودا هم ضروري ده.چه عوض د موهوب شي نه علاوه سره وي.كه د موهوب شي څه برخه ني عوض كي وركړله.مثلاً موهوب زر درهم وو.هم د هغي نه څه درهم ني د عوض په طور وركړل.يا موهوب يو كور وو.اوهم د هغي يوه اطاق ني په عوض كي وركړله.نودا به جائز نه وي.د امام زفر رحمه الله په نيز جائز دي.

قَالَ: (وَإِذَا اسْتَحَقَّ نِصْفَ الْهِبَةِ) كله چي څوك حقدار راوڅي.د نصف هبه، (رَجَعَ بِنِصْفِ الْعِوَضِ) نو نصف به واپس اخلي. لِأَنَّهُ لَمْ يُسَلَّمْ لَهُ مَا يُقَابِلُ نِصْفَهُ ځكه چي موهوب له لپاره هغه سلامت پاتي نشو.چه د نصف عوض په مقابل كي وي. (وَإِنِ اسْتَحَقَّ نِصْفَ الْعِوَضِ) و كه حقدار راوڅي. د نصف عوض، (لَمْ يَرْجِعْ فِي الْهِبَةِ) نود هبه څخه به واپس نه اخلي. (إِلَّا أَنْ يَرُدَّ مَا بَقِيَ) خودا چي هغه پاته عوض واپس كړي. (ثُمَّ يَرْجِعُ) بيا واپس خپله هبه واخلي.

تشريح: عوض لپاره دا ضروري نه ده.چه خامخا ني موهوب له وركړي. بلكه كه دده د اړخه يو اجنبي كس واهب ته دده د هبه عوض وركړو.بيا به هم د رجوع حق ساقطيږي.ځكه چي عوض وركول د تمليك عين لپاره نه دي.بلكه د رجوع حق ساقطولو لپاره دي.نودا به د اجنبي د اړخه هم صحيح كيږي.لكه د خلع او د صلح عوض د اجنبي د اړخه هم صحيح كيږي.مثلاً يو اجنبي د ښځي ميړه ته اووئيل.چه ته ده ته په دي شرط باندي خلع وركړه.چه زر درهم د خلع عوض په ما باندي دي.نو دا جائز دي.دغه ډول يو اجنبي د مقتول ولي ته اووئيل.چه ته قاتل ته قصاص معاف كړه.په دي شرط چي مال صلح يا ديت ما باندي دي.نودا هم جائز دي.ددي تحقيق دادي.چه د هبه عوض ور كاوه كي د موهوب له فائده دا وي.چه په دي سره د واهب حق رجوع ساقطيږي.اودا سقوط حق هيڅ شي نه دي.نود اجنبي د اړخه به د عوض اداكول صحيح وي.لكه څنګه چي ښځي ته د بدل خلع په ذريعه د ميړه د ملك ساقطيدلو فائده كيږي.اود اجنبي بدل خلع جائز ده.په خلاف د بيع په مسئله كي د ثمن،ځكه چي دي كي مشتري لپاره مبيع صحيح سلامت پاتي كيږي.نو اجنبي باندي به د ثمن وجوب جائز نه وي.

كه د عوض ور كاوه نه روسته نصف موهوب د بل چا راوتلو.نو موهوب له خپل نيم عوض واهب نه واپس اخستلي شي.ځكه چي د نصف عوض په مقابله كي چي كومه هبه وه.هغه موهوب له لپاره صحيح سلامت پاتي نشوه.اوكه نصف عوض د بل چا راوتلو.نو واهب دا نشي كولي.چه نصف موهوب واپس واخلي.بلكه [illegible] نصف عوض چي دده سره پاته دي.هغه به موهوب له ته واپس كوي.او خپل كل موهوب به واپس



اخلي.يا به هم په دي نصف عوض باني صبر كوي.امام زفر رحمه الله فرماني چه لكه څنګه موهوب له خپل نصف عوض واپس اخستلي شي.دغه ډول واهب هم خپله نصف هبه واپس اخستلي شي.لكه څنګه چي په بيع العرض بالعرض كي كيږي.چه په دي كي كه د يو عوض څه برخه مستحق راوڅي.نو مستحق عليه ته اختيار وي.چه كوم د مستحق په مقابله كي دي.هغه د خپل انډيوالان نه واپس واخلي.

وَقَالَ زُفَرُ: امام زفر رحمه الله فرماني.يَرْجِعُ بِالنِّصْفِ اعْتِبَارًا بِالْعِوَضِ الْآخَرِ. چي نصف هبه واپس اخستلي شي.په بل عوض باندي قياس كاوه سره،

تشريح: د علامه مرغيناني رحمه الله په قول «و قال زفر رحمه الله يرجع بالنصف» كي د نصف نه مراد نصف هبه ده.نصف عوض نه دي.لكه څنګه چي په كافي ،كفايه، او غاية البيان كي ددي صراحت شوي دي.صاحب د عنايه رحمه الله چي كوم «و يرجع بنصف العوض» ونيلي دي.دا د موصوف سهوه ده. (نتائج)

وَلَنَا زموږ دليل دادي. أَنَّهُ يَصْلُحُ عِوَضًا لِلْكُلِّ مِنَ الِابْتِدَاءِ، چي پاته پاتي عوض په ابتداء كي د كل هبه عوض كيداي شي. وَبِالِاسْتِحْقَاقِ ظَهَرَ أَنَّهُ لَا عِوَضَ إِلَّا هُوَ، إِلَّا أَنَّهُ يَتَخَيَّرُ اود استحقاق نه دا ښكاره شوه.چه عوض نه دي مګر هم دا پاته پاتي،خو واهب ته به اختيار وركولي شي. لِأَنَّهُ مَا أَسْقَطَ حَقَّهُ فِي الرُّجُوعِ ځكه چي هغه خپل د رجوع حق ساقط كړو. إِلَّا لِيُسَلَّمَ لَهُ كُلُّ الْعِوَضِ خو ددي لپاره چي پوره عوض دده لپاره سلامت پاتي شي. وَلَمْ يُسَلَّمْ او چي كله سلامت پاتي نشو. فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ. نو هغه واپس كولي شي.

تشريح: زموږ دليل دادي.چه په څومره اندازه عوض پاته پاتي دي.هغه په ابتداء كي د كل هبه عوض كيداي شي.او كوم چي ابتداء كي دكل هبه عوض كيداي شي.هغه په بقاء كي هم دكل عوض كيداي شي.ځكه چي د ابتداء په نسبت بقاء سهل (او آسانه) ده.او په نصف استحقاق كي د اخستلو نه روسته دا ښكاره شوه.چه كوم څه پاته پاتي شوي دي.هم دا عوض دي.خو دومره خبره ده.چه واهب ته به اختيار حاصل وي.كه غواړي.نو پاته عوض دي واپس كړي.ځكه چي هغه خپل د رجوع حق په دي اميد ساقط كړي وو.چه دا كل عوض ده ته ملاؤ شي.او هركله چي هغه ملاؤ نشو.نو هغه ته اختيار شو.چه پاته پاتي واپس كړي.او هركله چي هغه ني واپس كړو.نو هبه بلاعوض پاتي شوه.نو هبه واپس اخستلي شي.

قَالَ (وَإِنْ وَهَبَ دَارًا) كه يو كور ني هبه كړو. (فَعَوَّضَهُ مِنْ نِصْفِهَا) نو ددي د نصف عوض ني وركړو. رَجَعَ الْوَاهِبُ فِي النِّصْفِ الَّذِي لَمْ يُعَوَّضْ، نو واهب هغه نصف واپس اخستلي شي.د كوم ني چي عوض نه دي وركړي. لِأَنَّ الْمَانِعَ خَصَّ النِّصْفَ ځكه چي مانع صرف نصف سره مخصوص ده.

تشريح: كه يوكس يو كور بل ته هبه كړو.او موهوب له د هغي د نصف عوض وركړو.نو واهب هغه نصف واپس اخستلي شي.د كوم عوض ني چي نه دي وركړي.ځكه چي د رجوع نه مانع امر خاص كر نصف سره مخصوص دي.زيات نه زيات دادي.چه په دي سره شيوع لازميږي.خودا شيوع چونكه روسته پيدا شوي دي.په دي وجه به هيڅ مضر نه وي.

سوال: دا خبره وړاندي تيره شوي ده.چه عوض د حق اسقاط لپاره وي.نو ددي اثر په كل كي كيدل ضروري دي.چه تجزي (ټكړي كول) لازم نشي.لكه څنګه چي طلاق كي كيږي؟

ځواب: عوض من كل وجه اسقاط نه دي.بلكه په دي كي د مقابلي معنى هم ده.په دي اعتبار سره تجزي جائز ده.په خلاف د طلاق.

### د قاضي دحكم يا خپل منځ كښي رضامندئ نه بغير د رجوع حكم

قَالَ (وَلَا يَصِحُّ الرُّجُوعُ إِلَّا بِتَرَاضِيهِمَا) و هبه ته رجوع كول صحيح نه ده.مګر د دواړو په رضامندئ سره، أَوْ بِحُكْمِ الْحَاكِمِ) يا د قاضي په فيصله كاوه سره،

تشریح: د رجوع د جواز نه روسته د رجوع صحت بیانوی. دا ۔راندې معلومه شوه. چې واهب لپاره پخپله هبه کې رجوع کول جائز دی. که هغه رجوع اوکړی. نو د هغه رجوع به صحیح وی. خو صحت د رجوع به هغه وخت وی. کله چې رجوع کول د قاضی د فیصلې په ذریعه وی. یا د واهب او موهوب له پخپله منځ کې رضامندئ سره وی. مطلب دادې. چه د واهب په رجوع کولو سره به هیڅ فائده نه حاصلیږی. ترکومه پورې چې موهوب له په دې سره راضی نشی. یا بیا واهب د حاکم په عدالت کې ددې معاملې رفع دفع اوکړی. (یعنی مقدمه اوچلوی). چه حاکم موهوب له ته د هبه واپس کولو حکم اوکړی. تردې که واهب د قاضی د قضاء نه بغیر یا پخپل منځ کې د رضامندئ نه بغیر هبه واپس کړله. نو هغه به غاصب گنړلې شی. او که هبه د هغه سره هلاکه شوه. نو واهب به موهوب له لپاره ددې د قیمتونو ضامن نه وی. (بنایه)

لِأَنَّهُ مُخْتَلَفٌ بَيْنَ الْعُلَمَاءِ، خکه چې د رجوع جواز د عالمانو په منځ کې مختلف فیه دې.

تشریح: علامه مرغینانی رحمه الله د رضامندئ او د قاضی د قضاء نه بغیر د رجوع نه صحیح کیدلو درې وجوهات بیان کړی دی. ① اوله وجه هبه ته د رجوع جواز مختلف فیه دی. چه ددې تشریح تاج الشریعة وغیره شارحینو داسې کړې دې. چه زموږ په نیز واهب لپاره د رجوع اختیار دې. په خلاف د امام شافعی رحمه الله وغیره چې ددوی په نیز دلته ددې اختیار نشته. ﴿و إذا كان كذالك فكان ضعيفا﴾

اعتراض: خو په دې باندې صاحب د عنایه رحمه الله دا اعتراض کړې دې. چه د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب کوم چې د رجوع د جواز دی. دا د امام شافعی رحمه الله وغیره نه وړاندې مقرر شوې دې. نو د روسته خلگو اختلاف د ضعف سبب نشی کیدې. نودا به په اختلاف د صحابه رضی الله عنهم باندې محمول کولې شی. چه حضرت عمر، عثمان، علی، او حضرت ابوالدرداء رضی الله عنهم وغیره صحابه کرامو مذهب د رجوع جواز دې. او څه نور صحابه کرام رضی الله عنهم ددې خلاف دی.

خواب: د ابن حزم د قول ﴿لا مخالف لهم من الصحابة﴾ په لحاظ دا مخلصین هم مشکوک کیږی. په دې وجه دا په اختلاف د تابعینو باندې محمول کول غوره دی.

وَفِي أَصْلِهِ وَهَاءٌ او ددې د اصلیت په ثبوت کې ضعف دې.

تشریح: قوله: ﴿و فی أصله و هاء...﴾ دویمه وجه داده. چه د رجوع اصلیت ثابتیدلو کې ضعف دې. په دې معنی چې ددې ثبوت خلاف قیاس دې. خکه چې دا په ملك غیر کې تصرف دې. خکه چې موهوب له د قبضې په ذریعه د هبه مالك شوې دې. په لحاظ د رقبه هم او په لحاظ د تصرف هم.

فائده: علامه سغناقی، شیخ کاکی، صاحب عنایه، صاحب کفایه، او شارح انزاری رحمهم الله وغیره د امام مطرزی د المغرب نه نقل کړی دی. چه، ،وهاء، ، مد سره خطاء دی. دا خو، ،وهی ، ، دې. کوم چې د، ،وهی الجبل یهی وهیاً، ، مصدر دې. په معنی د رسئ کمزوری کیدلو، په دې باندې صاحب د عنایه رحمه الله فرمائیلی دی. چه د مقصور سماعی ممدود کیدل خطاء نه دی. او کومه خبره چې خطاء نه ده. د هغې تخطیه کیدل پخپله خطاء دی.

صاحب د نتائج رحمه الله فرمائی. چه غلطی پخپله د صاحب د عنایه رحمه الله ده. چه هغه د صاحب لویدیځ د قول نه دا اوگنړله. چه ، ،وهی ، ، په وزن د ، ،فعل، ، دې. لکه، ،ری ، ، دلیل دادې. چه صاحب د مغرب، ، وهی الجبل یهی وهیاً، ، ونیلی دی. که مقور مراد وو. نود، ، وهیاً ، ، په ځائې به ئې، ،وهاً ، ، ونیلی وو. والله اعلم.

وَفِي حُصُولِ الْمَقْصُودِ وَعَدَمِهِ خَفَاءٌ، اود مقصود په حاصلولو اونه حاصلیدلو کې خفاء ده. فَلَابُدَّ مِنَ الْفَصْلِ بِالرِّضَا أَوْ بِالْقَضَاءِ، نو فیصلې لپاره د قضاء یا رضاء کیدل ضروری دی. حَتَّى لَوْ كَانَتِ الْهِبَةُ عَبْدًا، تردې که هبه یو غلام وی. فَأَعْتَقَهُ قَبْلَ الْقَضَاءِ، او موهوب له د قاضی د حکم نه وړاندې هغه آزاد کړی. نَفَذَ، نو آزادول به نافذ کیږی. وَلَوْ مَنَعَهُ فَهَلَكَ، او که هغه غلام منع کړو. (یعنی خان سره اوساتلو). او هغه هلاك شو. لَمْ يَضْمَنْ، نو ضامن به نه وی. لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِيهِ، خکه چې دې کې د موهوب له ملك قائم دې. وَكَذَا إِذَا هَلَكَ فِي يَدِهِ بَعْدَ الْقَضَاءِ، دغه دول که دا



شی د قاضی دقضاء نه روسته دده سره ضائع شو. (نو هم ضمان نشته). لِأَنَّ أَوَّلَ الْقَبْضِ غَيْرُ مَضْمُونٍ، خکه چې رومبی قبضه ضمانتی نه وه. وَهَذَا دَوَامٌ عَلَيْهِ إِلَّا أَنْ يَمْنَعَهُ بَعْدَ طَلَبِهِ، اودا قبضه هم په دې باندې پاتې ده. مگر داچه د واهب د طلب نه روسته هغه دا (غلام) منع کړی. لِأَنَّهُ تَعَدِّي، خکه چې دا تعدی (تصرف او زیاتې) ده.

تشریح: دریمه وجه داده. چه زموږ په نیز رجوع کول اگرچه جائز ده. خود مقصود حاصلولو نه روسته جائز نه ده. اود واهب په مقصد حاصلولو او نه حاصلولو کې خفاء ده. خکه که هبه سره دده مقصد ثواب یا اظهار د بخشش وو. نو هغه حاصل شو. په دې لحاظ سره رجوع نشی کولې. اوکه دده مقصد عوض حاصلول وی. نو دا حاصل نشو. نو د رجوع کاوه حق پاتې شو.

نو په دې ذکر شوو دریو وجو په لحاظ ضروری ده. چه دوې (دوه) خبرو کې په یوه خبره باندې فیصله اوشی. یعنی یا خو واهب او موهوب له دواړه خپلو کې راضی وی. یا قاضی د واپس کاوه حکم اوکړی. ددې نه بغیر به رجوع کول صحیح نه وی. تردې که هبه یو غلام وی. چه په ده واهب رجوع اوکړله. او موهوب له د قاضی د حکم نه وړاندې هغه آزاد کړو. نو دده آزادول به نافذ کولې شی. اوکه موهوب له د واهب د رجوع کاوه اود هبه طلب کاوه نه روسته دده (یعنی د غلام) د ور کاوه نه انکار اوکړو. نو هغه به ضامن نه وی. خکه چې دې کې د موهوب له ملکیت قائم دې. دغه دول که د قاضی د حکم کاوه نه پس، واهب ته د ور کاوه نه وړاندې موهوب شی، ضائع شو. بیا به هم موهوب له ضامن نه وی. کله نې چې دده د ور کاوه نه انکار نه وی کړې. خکه چې رومبئ قبضه دده ضمانتی نه وه. نو په ضمانت کیدلو سره به نه بدلیږی. خکه چې موجوده قبضه هم هغه رومبئ قبضه راروانه ده. خو که د قاضی د فیصلې نه روسته واهب دا طلب کړی. او موهوب له دا منع کړی. نو بیا به ضامن وی. خکه چې اوس دده د اړخه تعدی اوموندې شوه.

وَإِذَا رَجَعَ بِالْقَضَاءِ أَوْ بِالتَّرَاضِي اوکله چې واهب په قضاء یا رضامندئ سره رجوع اوکړله. يَكُونُ فَسْخًا مِنَ الْأَصْلِ نودا به د اصل نه فسخ وی. حَتَّى لَا يُشْتَرَطَ قَبْضُ الْوَاهِبِ تردې چې د واهب قبضه کول به شرط نه وی. وَيَصِحُّ فِي الشَّائِعِ، اودا رجوع به په شائع او مشترك کې هم صحیح وی. لِأَنَّ الْعَقْدَ وَقَعَ جَائِزًا مُوجِبًا حَقَّ الْفَسْخِ، خکه چې عقد جائز، او اصل سره د فسخ د حق موجب واقع شوې وو. فَكَانَ بِالْفَسْخِ مُسْتَوْفِيًا حَقًّا ثَابِتًا لَهُ، نود فسخ په وجه هغه خپل داسې حق پوره اوموندلو. کوم چې دده لپاره ثابت وو. فَيَظْهَرُ عَلَى الْإِطْلَاقِ، نودا فسخ به علی الاطلاق ښکاره وی. بِخِلَافِ الرَّدِّ بِالْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ، په خلاف د بعد القبض د عیب په وجه د واپس کولو. لِأَنَّ الْحَقَّ هُنَاكَ فِي وَصْفِ السَّلَامَةِ لَا فِي الْفَسْخِ، خکه چې دلته کې د مشتری حق د سلامتیا په وصف کې دې. په فسخ کې نه دې. فَافْتَرَقَا، نو په دواړو کې توپیر اوشو.

تشریح: کله چې واهب د قاضی په حکم یا خپل منځ کې رضامندئ سره رجوع اوکړله. نودا به د ابتداء نه فسخ شمارلې کیږی. یعنی اصل عقد هبه فسخ شوه. تردې چې ددې نه روسته د واهب قبضه کول به شرط نه وی. بلکه د قبضې نه بغیر به د واهب ملکیت ثابتیږی. اودا رجوع به په شائع او مشترك کې هم صحیح وی. مثلاً که موهوب له د موهوبه زمکې نصف غیرمقصوم یوکس ته هبه کړو. نو پاته نصف مشترك کې به د واهب رجوع کول صحیح وی. خکه چې عقد اول کې دوې (دوه) صفتونه دی. ① یودا چې دا هبه جائز واقع شوې وه. ② دوهم داچه د اصل نه د حق فسخ موجب وه. نود فسخ په وجه هغه خپل داسې حق اوموندلو. کوم چې دده لپاره ثابت وو. نودا به فسخ علی الاطلاق ښکاره وی. که هبه پخپل حال موجود وی. یا په دې کې شیوع شوې وی. او که قبضه اوکړی. اوکه اونکړی. په خلاف ددې کله چې په بیع کې د قبضې نه روسته مشتری د عیب په وجه مبیع واپس کړې وی. چه هلته کې د قبضې نه وړاندې بې شکه چې فسخ ده. اود قبضې نه روسته که په حکم د قاضی وی. بیا هم فسخ ده. او که خپل منځ کې رضامندئ سره وی. نو بیع جدید ده. په دې وجه دلته کې د مشتری حق صرف دا وو. چه مبیع ده ته صحیح سلامت ملاؤ شی. دا نه چې

کله اوغواړي فسخ ئې کړي نو په هبه واپس اخستلو، او د عيب په وجه د مبيع واپس اخستلو کي توپير ښکاره شو.

### په هلاك شوې هبه کښې د حقدار راوتلو مسئله

قَالَ: (وَإِذَا تَلِفَتِ الْعَيْنُ الْمَوْهُوبَةُ وَاسْتَحَقَّهَا مُسْتَحِقٌّ) کله چې هلاك شي هبه کړې شوې شئ بيا ددې څوك حقدار راوځي وَضَمِنَ الْمَوْهُوبُ لَهُ و هغه د موهوب له نه ضمان واخلي. لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْوَاهِبِ بِشَيْءٍ) نو موهوب له د واهب نه هيڅ واپس نشي اخستلې لِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ ځکه چې دا عقد تبرع ده. فَلَا يَسْتَحِقُّ فِيهِ السَّلَامَةَ نو په دې کي به د سلامتيا مستحق نه وي.

تشريح: که مال موهوبه هلاك شي، او څوك سرې خپل استحقاق ثابت کړي، او د موهوب له نه تاوان واخلي، نو موهوب له د خپل واهب نه هيڅ څه واپس نشي اخستلې. ځکه چې هبه د يو احسان معامله ده. نو په دې کي دا استحقاق نشي کيدلې چه کوم شئ ورکړې شوې دې هغه موهوب له ته سلامت پاتې شي. بيا هغه په هبه قبلولو کي واهب لپاره عامل هم نه دې. تردې چې واهب د هغې ضامن شي. بلکه هغه خو خپل ځان لپاره عمل کونکي دې.

وَهُوَ غَيْرُ عَامِلٍ لَهُ، او هغه د واهب لپاره کار کونکي نه دې.

تشريح: د غير عامل قيد اتفاقي نه دې احترازي دې. ددې په ذريعه د مودَع (بفتح الدال) نه احتراز دې. که هغه څه تاوان ورکړي نو مودع باندې د رجوع حقدار دې. ځکه چې هغه په وديعت باندې قبضه کاوه کي ددې په ساتنه کي مودع لپاره عامل وي. «لانه يحفظه لاجله» دغه ډول د مضارب نه هم احتراز دې. که هغه د مال مضاربت نه څه واخلي بيا په مال مضاربت کي د چا استحقاق راوځي. او مستحق د هغه نه تاوان واخلي. نو هغه رب المال باندې د رجوع کاوه حقدار دې. «لانه عامل له».

وَالْغُرُورُ فِي ضِمْنِ عَقْدِ الْمُعَاوَضَةِ سَبَبُ الرُّجُوعِ او کومه دهوکه چې د عقد معاوضه په ضمن کي وي هغه د رجوع سبب وي. لَا ضِمْنَ فِي غَيْرِهِ په هغې (دهوکه) کي نه کومه چې د غير عقد په ضمن کي وي.

تشريح: دا د سوال مقدر خواب دې. سوال دادې چه واهب په محل مستحق کي موهوب له لپاره ملك ثابتولو کي هغه ته دهوکه ورکړې ده. او دهوکه ورکول موجب د ضمان وي. لکه که بائع مشتري ته دهوکه ورکړي نو هغه ضامن کيږي؟

خواب: دادې چه موجب د ضمان دهوکه هغه وي. کومه چې د عقد معاوضه په ضمن کي وي. لکه بيع وغيره، او کومه چې دغير معاوضه په ضمن کي وي. هغه موجب د ضمان نه وي. لکه که يوکس بل چا ته د لارې د امن کيدلو خبر ورکړو. او هغه په هغې روان شو. او ډاکوانو لوټ کړو. نو د خبر ورکونکي هيڅ نشي اخستلې.

سوال: دومره خبره خو په ،،في عقد المعاوضه،، ونيلو سره هم معلوميږي. بيا د لفظ ،،ضمن،، زياتولو څه مقصد دې؟

خواب: ددې فائده داده. چه د ولد مغرور په مسئله کي مشتري په بائع باندې قيمت اخستلو کي رجوع کوي. حالانکه ولد کي معاوضه نه وي. البته د عقد معاوضه په ضمن کي غرور موجود دې.

### د عوض په شرط د هبه کولو مسئله

قَالَ: (وَإِذَا وَهَبَ بِشَرْطِ الْعِوَضِ) که د عوض په شرط ئې هبه ئې کړو اُعْتُبِرَ التَّقَابُضُ فِي الْعِوَضَيْنِ، نو ضروري به وي، هم په دې مجلس کي دواړو عوضونو باندې قبضه کول، وَتَبْطُلُ بِالشُّيُوعِ) او باطليږي به د شيوع په وجه، لِأَنَّهُ هِبَةٌ ابْتِدَاءً ځکه چې دا ابتداء کي هبه ده. (فَإِنْ تَقَابَضَا) بيا که دواړو خپل منځ کي قبضه اوکړله. صَحَّ الْعَقْدُ نو عقد صحيح شو. وَصَارَ فِي حُكْمِ الْبَيْعِ ود بيع په حکم کي شو. يُرَدُّ بِالْعَيْبِ وَخِيَارِ الرُّؤْيَةِ چې د عيب او



خيار رؤيت په وجه به واپس کولې شي. وَتُسْتَحَقُّ فِيهِ الشُّفْعَةُ) او په دې کي به د شفعه مستحق وي. لِأَنَّهُ بَيْعٌ انْتِهَاءً ځکه چې دا انتهاء کي بيع ده.

تشريح: هبه په شرط د عوض زمونږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د عقد د ابتداء په اعتبار سره وي. او د انتهاء په اعتبار سره بيع وي. نو د هبه کيدلو په لحاظ سره به عوضين باندې قبضه کول شرط وي. او که موهوب محتمل القسمة شئ وي. او مشاع وي. نو عوض به باطل وي. او د بيع کيدلو په لحاظ به هبه د خيار رؤيت او خيار عيب په بناء باندې واپس کولې شي. او په دې کي به د شفعه کونکي لپاره حق شفعه هم ثابت وي.

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رحمهما الله: امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمائي. هُوَ بَيْعٌ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً، چې دا بيع ده. په ابتداء کي هم او په انتهاء کي هم. لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْبَيْعِ ځکه چې دې کي د بيع معنى ده. وَهُوَ التَّمْلِيكُ بِعِوَضٍ، او دا په عوض سره مالك کول دي. وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُودِ لِلْمَعَانِي، او اعتبار په عقدونو کي د معانيو وي. وَلِهَذَا كَانَ بَيْعُ الْعَبْدِ مِنْ نَفْسِهِ إِعْتَاقًا. په دې وجه غلام هم دده په لاس خرڅول آزادول وي.

تشريح: د امام زفر او امام شافعي په نيز د ابتداء او انتهاء دواړو اعتبار سره بيع ده. ځکه چې هبه کي د بيع معنى موندلې کيږي. يعنى تمليك بالعوض، او په عقودو کي د معانيو اعتبار کولې شي. لکه اوګورئ چه کفالت په شرط د براءت د اصيل، حواله وي. او حواله په شرط د عدم براءت د اصيل کفاله وي. او که انجلئ ئې يوکس ته هبه کړله. نو دا نکاح وي. او غلام پخپله د هغه لپاره هبه کول اعتاق (آزادول) وي. او قرضداري ته پور هبه کول سره ابراء وي.

وَلَنَا زمونږ دليل دادې. أَنَّهُ اشْتَمَلَ عَلَى جِهَتَيْنِ چې دا په جهتونو باندې ګډ دې. فَيُجْمَعُ بَيْنَهُمَا مَا أَمْكَنَ عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ، نو ترکومه پورې چې ممکن وي. دواړو کي به جمع کولې شي. وَقَدْ أَمْكَنَ، او دلته دا هم ممکن ده. لِأَنَّ الْهِبَةَ مِنْ حُكْمِهَا تَأَخُّرُ الْمِلْكِ إِلَى الْقَبْضِ، ځکه چې د هبه د حکم څخه ملك مؤخر کول دي. تر قبضې پورې، وَقَدْ يَتَرَاخَى عَنِ الْبَيْعِ الْفَاسِدِ او دا کله کله په بيع فاسد کي هم کيږي. وَالْبَيْعُ مِنْ حُكْمِهِ اللُّزُومُ، او د بيع د حکم څخه دي. د عقد لازميدل، وَقَدْ تَنْقَلِبُ الْهِبَةُ لَازِمَةً بِالتَّعْوِيضِ او په عوض ور کاوه سره هبه هم لازميږي. فَجَمَعْنَا بَيْنَهُمَا، نو مونږ دواړه جمع کړل. بِخِلَافِ بَيْعِ نَفْسِ الْعَبْدِ مِنْ نَفْسِهِ، په خلاف د غلام پخپله هم دده په لاس د خرڅولو. لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْبَيْعِ فِيهِ، چې په دې کي د بيع اعتبار نا ممکن دې. إِذْ هُوَ لَا يَصْلُحُ مَالِكًا لِنَفْسِهِ ځکه چې غلام پخپله د خپل ذات نه مالك کيږي.

تشريح: زمونږ دليل دادې. چه په دې کي دواړه جهتونه دي. د لفظ په اعتبار سره هبه ده. او د معنى په اعتبار سره بيع ده. نو حتى الامکان به دواړو جهتونو باندې عمل کولې شي. او دلته دا ممکن هم ده. ځکه چې د هبه د احکامو څخه دا خبره ده. چه د ملکيت حصول د قبضه کيدلو پورې مؤخر وي. او دا خبره کله کله په بيع فاسد کي هم موندلې شي. لکه چې عوض ور کاوه سره هبه هم لازميږي. نو مونږ په هبه په شرط د عوض کي دواړو جهتونو باندې عمل کاوه سره په ابتداء کي د هبه حکم اوساتلو. او هم په دې مجلس کي خپل منځ کي د قبضه کيدلو نه روسته انتهاء کي دا بيع اوګرځوله. په خلاف د غلام پخپله هم دده په لاس د خرڅولو، چه په دې باندې امام زفر او امام شافعي رحمهما الله قياس کړې دې. چه په دې کي د بيع اعتبار کول ناممکن دى. ګڼنې لازميږي. چه مولا عوض واخستلو. او غلام ئې دغلام په ملك کي ورکړو. حالانکه دا باطل دى. نو هم دا به ونيلې شي. چه مولا مال ورکړې. او آزاد ئې کړې ئې دې.

### د حمل په استثناء سره د وينځې هبه کولو حکم

قَالَ: فرمائي. (وَمَنْ وَهَبَ جَارِيَةً إِلَّا حَمْلَهَا چې يوکس خپله وينځه هبه کړله. سوا ددې د حمل نه، صَحَّتِ الْهِبَةُ نو هبه به صحيح وي. وَبَطَلَ الِاسْتِثْنَاءُ) او استثناء به باطله وي. لِأَنَّ الِاسْتِثْنَاءَ لَا يَعْمَلُ إِلَّا فِي مَحَلٍّ يَعْمَلُ فِيهِ الْعَقْدُ،

خکه چې استثناء په هغه محل کې عمل کوي په کوم کې چې عقد عمل کوي. وَالْهِبَةُ لَا تَعْمَلُ فِي الْحَمْلِ او هبه په حمل کې هیڅ عمل نه کوي. لِكَوْنِهِ وَصْفًا دا دي د وصف کیدلو په وجه. عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ فِي الْبُيُوعِ لکه څنګه چې مونږ په بیوع کې بیان کړي دي. فَانْقَلَبَ شَرْطًا فَاسِدًا نو دا استثناء په شرط فاسد سره بدله شوه. وَالْهِبَةُ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او هبه په شروط فاسده سره نه باطلیږي. وَهَذَا هُوَ الْحُكْمُ فِي النِّكَاحِ وَالْخُلْعِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمْدِ او هم دا حکم دي په نکاح او خلع کې د قتل عمد نه د صلح کاوه کې. لِأَنَّهَا لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ خکه چې دا هم په شروط فاسده سره نه باطلیږي. بِخِلَافِ الْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ وَالرَّهْنِ لِأَنَّهَا تَبْطُلُ بِهَا په خلاف د بیع او اجاره، او د رهن، چه دا په شروط فاسده سره باطلیږي.

**تشریح:** که یو کس وینځه هبه کړله. او د هغې د حمل استثناء ئې اوکړله. نو هبه به په وینځه او حمل دواړو صحیح وي. او د حمل استثناء به باطله وي. خکه چې استثناء په هغه محل کې عمل کوي په کوم کې چې عقد عمل کوي. او په حمل کې د عقد هبه هیڅ عمل نشته. خکه چې دا خو یو وصف او تابع دي. نو دا استثناء شرط فاسد شو او هبه په شروط فاسده سره نه باطلیږي. هم دا حکم د نکاح، خلع او قتل عمد نه د صلح کولو دي. خکه چې دا هم په شروط فاسده سره نه باطلیږي.

**فائده:** د طحاوي په شروحو کې ذکر دي. چه په استثناء کې درې مراتب دي. ① دا چې عقد او استثناء دواړه فاسد وي. لکه بیع، اجاره، کتابت، رهن ② دوهم دا چې عقد جائز وي. او استثناء فاسده وي. لکه هبه، صدقه، نکاح، خلع او صلح عن دم العمد، ③ دریم دا چه عقد او استثناء دواړه صحیح وي. لکه وصیت، مثلاً د وینځې وصیت ئې اوکړو. او د هغې د حمل استثناء ئې اوکړله. نو دا صحیح ده.

## د وینځې د حمل آزادول او یا د هبه کولو حکم

وَلَوْ أَعْتَقَ مَا فِي بَطْنِهَا او که آزاد ئې کړو. هغه (حمل) کوم چې د وینځې په نس کې دي. ثُمَّ وَهَبَهَا بیا ئې وینځه هبه کړله. جَازَ نو جائز ده. لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ الْجَنِينُ عَلَى مِلْكِهِ خکه چې جنین (حمل) د واهب په ملك باندې پاتې نه دي پاتې شوي. فَأَشْبَهَ الِاسْتِثْنَاءَ نو د استثناء مشابه شو.

**تشریح:** که د وینځې حمل ئې آزاد کړو. بیا ئې وینځه هبه کړله. نو دا جائز دي. خکه چې د اعتاق نه روسته مذکوره حمل په ملك د واهب باندې پاتې پاتې نشو. (نو دا د مشاع هبه نشوه). نو دا د حمل د استثناء مشابه شوه. چه د وینځې د هبهٔ په حالت کې د حمل د استثناء نه روسته هم په ملك د واهب باندې پاتې نه پاتې کیږي. خکه چې د حمل استثناء صحیح نه ده.

وَلَوْ دَبَّرَ مَا فِي بَطْنِهَا او که مدبر ئې کړو. هغه کوم چې ددې په نس دي. ثُمَّ وَهَبَهَا بیا ئې وینځه هبه کړله. لَمْ يَجُزْ نو جائز به نه وي. لِأَنَّ الْحَمْلَ بَقِيَ عَلَى مِلْكِهِ خکه چې حمل اوس هم د واهب په ملك باندې پاتې دي. فَلَمْ يَكُنْ شِبْهَ الِاسْتِثْنَاءِ نو د استثناء مشابه به نه وي. وَلَا يُمْكِنُ تَنْفِيذُ الْهِبَةِ فِيهِ لِمَكَانِ التَّدْبِيرِ او حمل کې هبه نافذ کول ممکن نه ده. د تدبیر په وجه. فَبَقِيَ هِبَةُ الْمُشَاعِ أَوْ هِبَةُ شَيْءٍ نو د هبه مشاع یا د داسې شي هبه شوه. هُوَ مَشْغُولٌ بِمِلْكِ الْمَالِكِ کوم چې د مالك ملك سره مشغوله ده.

**تشریح:** او که حمل ئې مدبر کړو. بیا ئې وینځې ته هبه کړو. نو دا جائز نه ده. خکه چې حمل اوس هم د واهب په ملك باندې پاتې دي. نو دا د استثناء مشابه نشوه. او دا ممکن نه ده. چه حمل کې هم هبه نافذ کړې شي. خکه چې حمل مدبر دي. چه دا قابل د تملیك نه دي. نو دا هبه د دوې (دوه) حالو نه خالي نه ده. یا خود مشاع هبه ده. یا د داسې شي هبه ده. چه ددې سره د مالك یعنی د واهب ملك متعلق دي. او په دې دواړو صورتونو کې هبه نه جائز کیږي. لکه که داسې بوری ئې هبه کړله. چه په هغې کې د واهب غله ډکه کړې شوې ده. نو دا هبه صحیح نه ده.



قَالَ: (فَإِنْ وَهَبَهَا لَهُ او که وینځه ئې هغه ته په دې شرط هبه کړله. عَلَى أَنْ يَرُدَّهَا عَلَيْهِ چې هغه به وینځه ده ته واپس کوي. أَوْ عَلَى أَنْ يُعْتِقَهَا یا به ئې آزاده وي. أَوْ أَنْ يَتَّخِذَهَا یا به ام ولد جوړه وي. أُمَّ وَلَدٍ أَوْ وَهَبَ دَارًا أَوْ تَصَدَّقَ عَلَيْهِ بِدَارٍ یا ئې هغه ته یو کور هبه یا صدقه کړو. عَلَى أَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِ شَيْئًا مِنْهَا په دې شرط چې هغه به په دې کې څه واپس کوي. أَوْ يُعَوِّضَهُ شَيْئًا مِنْهَا یا په دې کې څه ټکړه عوض ورکوي. فَالْهِبَةُ جَائِزَةٌ وَالشَّرْطُ بَاطِلٌ) نو هبه جائز او شرط باطل دي.

**تشریح:** که وینځه په دې شرط هبه کړله. چه موهوب له به ده ته وینځه واپس کوي. یا به دا آزاده وي. یا به ئې ام ولد جوړه وي. یا یو کس یو کور په دې شرط هبه یا صدقه کړو. چه موهوب له به په دې کور کې څه برخه واپس کوي. یا به په دې کې څه ټکړه عوض ورکوي. نو په دې ټولو صورتونو کې به هبه یا صدقه جائز وي. او شرطونه به باطل وي.

لِأَنَّ هَذِهِ الشُّرُوطَ تُخَالِفُ مُقْتَضَى الْعَقْدِ خکه چې دا شرطونه د عقد د مقتضاء خلاف دي. فَكَانَتْ فَاسِدَةً نو فاسد شو. وَالْهِبَةُ لَا تَبْطُلُ بِهَا، چې په دې سره هبه نه باطلیږي. أَلَا تَرَى آیا نه ګورې. {أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَجَازَ الْعُمْرَى وَأَبْطَلَ شَرْطَ الْمُعْمِرِ}(١) بِخِلَافِ الْبَيْعِ {لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ بَيْعٍ وَشَرْطٍ}(٢) چې نبی کریم ﷺ د بیع او شرط نه منع فرمائیلې ده.

**تشریح:** خکه چې دا شرطونه د عقد د مقتضاء خلاف دي. او هبه په داسې شرطونو سره نه باطلیږي. لکه چې نبی کریم ﷺ د عمری اجازت ورکړې دي. او د عمری ورکونکي شرط ئې باطل ګرخولې دي. په خلاف د بیع، چې دا په شروط فاسده سره فاسدیږي. خکه چې نبی کریم ﷺ د بیع او شرط نه منع فرمائیلې ده. (طبرانی وغیره)

وَلِأَنَّ الشَّرْطَ الْفَاسِدَ فِي مَعْنَى الرِّبَا، او خکه چې شرط فاسد د سود په معنی کې دي. وَهُوَ يَعْمَلُ فِي الْمُعَاوَضَاتِ دُونَ التَّبَرُّعَاتِ. او د سود اثر په معاوضاتو کې وي. په تبرعاتو کې نه وي.

**تشریح:** په مذکوره صورت کې د هبهٔ د جواز عقلي وجه دا ده. چه هبه او صدقه وغیره کوم چې خالص احسان دې په هغې کې د سود معنی نه موندلې کیږي. خکه چې سود هغې ته وائي. چه خپل منځ کې معاوضه کې د یو اړخه یو جزء داسې وي. چه د هغې په مقابله کې عوض نه وي. او په هبه او صدقه وغیره تبرعاتو کې کله چې عوض نه وي. نو سود به د کوم اړخه وي.

قَالَ: (وَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ أَلْفُ دِرْهَمٍ د یو کس په بل باندې زر درهم دي. فَقَالَ نو پور خواه اووئیل. إِذَا جَاءَ الْغَدُ چې کله صبا له ورځ راشي. فَهِيَ لَكَ نو هغه ستا دي. أَوْ أَنْتَ مِنْهَا بَرِيءٌ یا ته د هغې نه بری یې. أَوْ قَالَ: یا ئې اووئیل. إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ النِّصْفَ چې کله ته ما ته نیم اداکړې. فَلَكَ نِصْفُهُ نو نیم ستا دي. أَوْ أَنْتَ بَرِيءٌ مِنَ النِّصْفِ الْبَاقِي یا ته د پاته نیمو نه بری یې. فَهُوَ بَاطِلٌ) نو دا باطل دي.

**تشریح:** یو سړی خپل قرضداری ته اووئیل چه کله صبا شي. نو هغه پور ستا دي. یا ته د هغې نه بری یې. یا ئې اووئیل. که ته ما ته نصف قرضه اداکړې. نو پاته نصف قرضه ستا ده. یا ته د هغې نه بری یې. نو دا څلور واړه صورتونه باطل دي.

(١) من حدیث جابر رضي الله عنه أخرجه البخاری فی الهبات باب ٣٢ ومسلم فی الهبات رقم ٢٥ وأبوداؤدفی البیوع باب ٨٥ رقم ٣٥٥٠ والنسائی فی العمری باب ٤ وأحمد فی المسند (٣٠٤\٣) رقم ٣٠٤)_

(٢) تقدم تخریجه فی أوائل کتاب البیوع)_

لِأَنَّ الْإِبْرَاءَ تَمْلِيكٌ مِنْ وَجْهٍ إِسْقَاطٌ مِنْ وَجْهٍ، ځکه چې برې کول په یوه وجه تملیك او په یوه وجه اسقاط وي. وَهِبَةُ الدَّيْنِ مِمَّنْ عَلَيْهِ إِبْرَاءٌ او په چاچه پور دي. هغه ته قرضه هبه کول برې کول وي. وَهٰذَا لِأَنَّ الدَّيْنَ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ اودا ځکه دی. چه قرضه په یوه وجه مال دي. وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ كَانَ تَمْلِيكًا په دې لحاظ به تملیك وي. وَوَصْفٌ مِنْ وَجْهٍ او په یوه وجه وصف دي. وَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ كَانَ إِسْقَاطًا په دې وجه به اسقاط وي. وَلِهٰذَا قُلْنَا: په دې وجه موږ وئیلي دي. إِنَّهُ يَرْتَدُّ بِالرَّدِّ، چې دا په رد کاوه سره رد کیږي. وَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَبُولِ. او په قبلولو باندې موقوف نه وي. وَالتَّعْلِيقُ بِالشُّرُوطِ يَخْتَصُّ بِالْإِسْقَاطَاتِ الْمَحْضَةِ الَّتِي يُحْلَفُ بِهَا او په شرط باندې معلق کول اسقاطات محضه سره مختص دي. چې دې سره قسم خوړلې کیږي. كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ فَلَا يَتَعَدَّاهَا لکه طلاق او عتاق، نودا به ددې نه نه زیاتیږي.

تشريح: ځکه چې ابراء من وجه تملیك دې. او من وجه اسقاط دې. ځکه چې پور یو لحاظ سره مال دې. نو په دې اعتبار سره به ددې هبه کول تملیك وي. او په یو لحاظ سره دا بالفعل وصف دې. په دې اعتبار سره به ددې هبه کول اسقاط وي. او د قرضدارې په قبلولو باندې به موقوف نه وي. بهرحال ابراء من وجه تملیك دی. او من وجه اسقاط دې. او قرضدارې ته پور هبه کول ابراء ده. نو ده ابراء په صحیح شرط باندې معلق کړو. حالانکه تعليق بالشرط اسقاطات محضه سره خاص دې. په کومو کې چې قسم ورکولې شي. لکه طلاق او عتاق. ځکه چې طلاق کې صرف دا وي. چه میړه د ښځې د ذمې نه د خپلې نکاح ملك ساقط کړو. او په عتاق کې صرف دا کیږي. چه آقا د مملوك د سټ نه خپل ملکیت ساقط کړو. نو په دې کې خو تعليق بالشرط صحیح دې. چه که ته فلانی کار اوکړې. نو ته طلاقه یې. یا ته دې آزاده یې. ددې نه ماسوا کې تعلیق صحیح نه دې. او موږ ثابت کړې دي. چه هبه او براءت اسقاط محضه نه دي. بلکه من وجه تملیك دې. نودا به په شرط باندې معلق کول جائز نه وي.

## عمرې جائز او رقبې ناجائز ده

قَالَ: (وَالْعُمْرَى جَائِزَةٌ) وعمرې جائز ده. (لِلْمُعْمَرِ لَهُ حَالَ حَيَاتِهِ) د معمرله لپاره دده د واړه عمر دپاره، (وَلِوَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ) او دده د وارثانو دپاره. دده د مرګ نه پس. لِمَا رَوَيْنَا. د هغه حدیث په وجه. کوم چې موږ روایت کړو. وَمَعْنَاهُ أَنْ يَجْعَلَ دَارَهُ لَهُ عُمْرَهُ. او ددې معنی داده. چه اوګرځوی خپل کور دده دپاره. دده د واړه عمر پورې. وَإِذَا مَاتَ کله چې هغه مړ شي. تُرَدُّ عَلَيْهِ نو معمر ته به واپس ورکولې شي. فَيَصِحُّ التَّمْلِيكُ، وَيَبْطُلُ الشَّرْطُ لِمَا رَوَيْنَا نو تملیك صحیح او شرط به باطل وي. د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړو. وَقَدْ بَيَّنَّا او موږ دا بیان کړل. أَنَّ الْهِبَةَ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ چې دا هبه په شروط فاسده سره نه باطلیږي.

تشريح: عمرې د اعمار اسم دې. «يقال اعمرته الدار عمرى جعلتها لك عمرك أو حياتك أو ما عشت أو حييت أو بقيت» ما دا کور د واړه عمر د اوسیدلو لپاره ورکړو. د جواز وجه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.،، العمرى جائزة،، (شیخین عن ابی هریرة رضي الله عنه)

(۱) بیا په قول د امام نووی رحمه الله وغیره د عمرې درې صورتونه دي. ① اودا چې داسې اووائي. «أعمرتك هذه الدار فإذا مت فهي لورثتك أو لعقبك»،، ما دا کور تا ته د واړه عمر لپاره درکړو. کله چې ته مړ شې. نودا ستا د وارثانو اود روسته خلقو لپاره دې،، دا عمرې خو بلا خلاف صحیح ده. اودا د تخفي پشان دې. په دې صورت کې به د موهوب له د وفات نه روسته دا کور دده د وارثانو وي. او که وارث نه وي. نو په بیت المال کې به داخلولې شي. عمرې کونکې ته به دوباره نه ملاویږي. دا حکم د امام مسلم رحمه الله روایت،، لیث عن ابن شهاب عن ابی سلمه عن جابر رضي الله عنه،، کې ذکر دي. «أنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول من أعمر رجلاً عمرى له و لعقبه فقد قطع قوله حقه فيها و هي لمن أعمر و لعقبه»،، حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي. چه ما د نبی کریم ﷺ نه واورېدل. چه فرمائیل یې: چه کوم سړې عمرې اوکړي. د یو کس دپاره، اود هغه د روسته خلقو دپاره، نو هغه خپل حق ختم کړو. اوس به هغه د



معمرله اود هغه د وارثانو لپاره وي،، ② دوهم داچه مطلق داسې اووائي. «جعلتها لك عمرك هذا لك عمرى» ددې نه علاوه هیڅ اونه وائي. په دې کې د امام شافعي رحمه الله دوې (دوه) قوله دي.(۱) اصح دادې. چه دا هم صحیح ده. او ددې حکم هم د اول پشان دې. کوم چې د امام مسلم په روایت «ابن جريج عن أبي الزبير عن جابر» کې ذکر دي. «قال أعمرت إمرأة بالمدينة حائطا لها إبنا لها ثم توفي توفيت بعده و ترك ولداً و له إخوة بنون للعمرة فقال ولد المعمرة رجع الحائط إلينا و قال بنو المعمر بل كان لإبينا حياته موته فاختصموا إلى طارق مولى عثمان فدعا جابراً فشهد على رسول الله ﷺ بالعمرى لصاحبها فقضى بذالك طارق»،، حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي. چه په مدینه کې یوې ښځې خپل خوی ته یو باغ عمرې ورکړو. بیا دغه زوې مړ شو. د هغه نه روسته ښځه مړه شوه. او هغې اولاد پرېښولو. او رور، نو د ښځې اولاد اووئیل. چه باغ بیا زموږ طرف ته راغي. اود معمر خامنو اووئیل. چه باغ زموږ د پلار وو. د هغه په ژوند او مرګ کې. بیا هغوی ددې مقدمه پیش کړله. طارق ته. کوم چې د حضرت عثمان رضي الله عنه مولی وو. هغوی حضرت جابر رضي الله عنه راوغوښتلو. او هغوی ګواهي ورکړله. د نبی کریم ﷺ په فرمان باندې. چه عمرې د هغه چا ده. چا ته چې ورکړې شي. نو طارق هم په دې باندې فیصله ورکړله،،(۲) د امام شافعي رحمه الله دوهم قول دادې. چه دا عقد باطل دې. ددوی بعضو اصحابو دا هم وئیلي دي. چه د امام شافعي رحمه الله قول قدیم دادې. چه دا کور به ترعمره پورې د هغه په قبضه کې وي. او دده د وفات نه روسته به معمر ته ملاویږي. او که هغه نه وي. نود هغه وارثانو ته به ملاویږي. او بعض شوافعو په قول قدیم کې دا وئیلي دي. چه دا به د عاریت پشان وي. چه معمر کله اوغواړي. دا دې واپس واخلي. او که هغه مړ شي. نودا حق به دده وارثانو ته حاصليږي. ③ دریم داچه داسې اووائي. «جعلتها لك عمرك فإذا مت عادت إلي أو إلى ورثتي إن كنت مت»،، داکور ما تا ته د واړه عمر لپاره درکړو. کله چې ته مړ شې. نو کور زما دې. یا زما د وارثانو دې،، ددې په صحت کې اختلاف دې. د بعضو په نیز دا باطل ده. او اصح دادې. چه دا عقد هم صحیح دې. او ددې حکم هم د اول پشان دې. کوم چې د امام نسائي اود امام طحاوي رحمهما الله په روایت د،، هشام عن ابن الزبير عن جابر رضي الله عنه،، کې او په روایت د امام مسلم رحمه الله،، زهير و ابوخيثمه و حجاج بن ابی عثمان و سفیان و ایوب عن ابی الزبير عن جابر رضي الله عنه،، کې ذکر دي. «انه قال قال رسول الله ﷺ أمكسوا عليكم أموالكم و لا تفندوها فإنه من أعمر عمرى فهي للذى أعمر لها حياً و ميتاً و لعقبه»،، حضرت جابر رضي الله عنه فرمائي. چه نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلې دې. چه د خپلو مالونو حفاظت کوئ. او ضائع کوئ ئې مه. ځکه چې کوم سړې عمرې ورکړي. هغه به هم د هغه لپاره وي. چا ته چې ورکړې شي. که ژوندې وي. او که مړ وي. اود هغه د وارثانو به وي،، دغه شان که داسې ئې اووئیل. «جعلتها لك و بعقبك فإن حدث بك حدث و بعقبك فهو الي و إلى عقبي» نو ددې حکم هم دادې. چه هبه صحیح ده. او شرط باطل دې. لکه څنګه چې د امام نسائي رحمه الله روایت،، ابن هشاب عن ابی سلمه عن جابر رضي الله عنه،، کې ذکر دي. «أن رسول الله ﷺ قضى بالعمرى أن يهب للرجل و لعقبه و يستثنى أن حدث بك حدث و بعقبك فهو إلى و إلى عقبى أنها لمن أعطيها و لعقبه» بهرحال په ذکرشوې دریو واړو صورتونو کې هبه کول صحیح ده. اود واپسۍ شرط باطل دې. نو د واړه عمر لپاره به دا کور د معمرله (موهوب له) لپاره وي. او دده د مرګ نه روسته به دده د وارثانو لپاره وي. د حضرت ابن عباس، جابر بن عبدالله، علي، اود حضرت ابن عمر رضي الله عنهم قول هم دادې. او په قول جدید کې امام شافعي، قاضي شریح، ابو عبید حسن بن صالح، مجاهد، طاؤس، او سفیان ثوري رحمهم الله هم ددې قائل دي.

(۲) د امام محمد رحمه الله په نیز عمرې مطلقه صحیح نه ده. او موقت صحیح ده. فقیه لیث بن سعد، امام مالك، اود امام شافعي رحمهم الله قول قدیم دادې. چه په عمرې کې د منافعو تملیك وي. عین تملیك نه وي. نو ترعمره پورې به کور معمرله لپاره وي. اود مرګ نه روسته به اصل مالك ته واپس کولې شي. قاسم بن محمد، یزید بن قسیط، یحي بن سعید انصاري رحمهم الله هم دې طرف ته تللي دي. ځکه چې صحیح مسلم کې،، عن معمر عن الزهري عن أبي سلمه عن جابر رضي الله عنه،، نقل دي. «إنما العمرى التي أجاز رسول الله ﷺ أن يقول هي لك و لعقبك فاما إذا قال هي لك ما عشت فإنها ترجع إلى صاحبها»،، چې کومه عمرې نبی کریم ﷺ جائز ګرځولې ده. هغه داده. چه معمرله دا اووائي. «هي لك و لعقبك» که صرف دومره ئې اووئیل. «هي لك ما عشت» نو په دې صورت کې به دا اصل مالك ته

واپس كولې شي.

۞ د ابن الاعرابی نه نقل دی، چه په دې کې د اهل عربو اختلاف نشته، چه عمری ، رقبی ، منحه، عریه، عاریه، او سکنی کې شی د اصل مالك مملوك وی، او منافع د موهوب له لپاره وی. د مدینې د خلقو په دې باندې اجماع ده. زمونږ دلیل د ذکرشوی احادیثونه علاوه د صحیح مسلم د حضرت جابر رضي الله عنه صریح حدیث هم دې. «ان رسول الله ﷺ قال ایما رجل عمر رجلاً عمری له و لعقبه فقال قد أعطیتکها و عقبك ما بقی منکم احد فانما لمن أعطیها فانها لا ترجع إلی صاحبها من أجل انه أعطی عطاء و قعت فیه المواریث» نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو. کوم سړی چې عمری ورکړی، بل چا ته. د هغه د ژوندی پورې، او د هغه نه روسته د هغه وارثانو ته. او داسې اووائی، چه ما تاته درکړو. او ستا نه روسته ستا وارثانو ته، ترکوم وخته پورې چې په دوی کې څوك هم پاتې وی. نو دا به هم د هغه وی. په صحیح مسلم کې د حضرت جابر رضي الله عنه روایت دې. «أن رسول الله ﷺ قضی فیمن أعمری عمری له و لعقبه فهی له تبلة له یجوز للمعطی فیها شرط و لا ثنیا قال ابوسلمه رضي الله عنه لأنه أعطی عطاء و قعت فیه المواریث فقطعت المواریث شرطه» ، ، نبی کریم ﷺ حکم ورکړو، چه څوك يو كس ته عمری ورکړی، او د هغه نه روسته د هغه وارثانو ته، نو هغه قطعی طور باندې د معمرله په ملکیت کې کیږی. اوس به د معمر هیڅ شرط یا استثناء جائز نه وی. ابوسلمه رضي الله عنه اووئیل. دا ځکه چې ده داسې عطاء کړې ده، چه په دې کې میراث اوشو. او میراث دده شرط کټ کړو، ،

۞ او د حضرت جابر رضي الله عنه روایت «انما عمری التی اجاز» د کوم نه چې امام شافعی رحمه الله په قول قدیم کې استدلال کړې دې. د هغې جواب دادې، چه دا صحیح نه ده. ځکه د حضرت جابر رضي الله عنه نه صریح روایات ستاسو وړاندې پیش کړې شو، چه د عمری شی د واړه عمر لپاره د معمرله او د هغه نه روسته د وارثانو وی. معمر ته به واپس نه ملاوېږی. بیا تاسو دا څنګه وئیلې شی؟ چه «انما عمری التی اجاز».

۞ او د بودۍ په ذکر شوې قصه کې د معمرله د خوی په حق کې فیصله څنګه ورکولې شی. چه عمری ورکونکې خپل خوی ته دا نه وو وئیلی، چه «انما لك و لعقبك بعدك» ځکه که هغې دا وئیلی وو، بیا خو د جګړې هیڅ سوال نه پیدا کیدلو. خبره په اصل کې داده، چه امام زهری رحمه الله د حضرت جابر رضي الله عنه قول «أن رسول الله ﷺ قال من أعمر رجلاً عمری فهی له و لعقبه» نه دا ګڼړلی دی، چه په دې کې ، ، له و لعقبه، ، د مطلق عمری تفسیر دې. یا په حدیث کې چې کوم حکم دې. هغې لپاره دا د شرط په طور ذکر دې. هم په دې ګمان هغوی د حضرت جابر رضي الله عنه نه دا روایت کړې دې. «أنه قال انما عمری التی أجاز رسول الله ﷺ أن یقول هی لك و لعقبك» «فاما إذا قال هی لك ما عشت فانها ترجع إلی صاحبها» ، ، حالانکه د موصوف دا ګڼړل غلط دی. حق دادې، چه نه دا د مطلق عمری تفسیر دې. او نه د شرط په طور ذکر دی. بلکه دا د عمری د یو خاص صورت بیان دې. او مقصد دادې. که څوك داسې قسمه عمری اوکړی. نو ددې حکم دادې. دا مطلب نه دې، چه دا حکم صرف هم په دې صورت کې دې.

۞ پاتې شو د ابن الاعرابی ذکرشوې نقل نو ددې جواب دادې، چه د مدینې د خلقو د اجماع دعوه صحیح نه ده. ځکه چې ډیر صحابه کرام رضي الله عنهم ددې خلاف دی. لکه چې مونږ ذکر کړل. پاتې شو د اهل عربو په نیز عمری کې تملیك د منافعو کیدل، نو دا هیڅ ضرر نه دې. حالانکه شارع دا د تملیك رقبه لپاره نقل کړې دې. لکه څنګه چې په لغظ د صلاة او زکاة کې دی.

**رقبی باطل ده او که نه؟ اقوال فقهاء**

(وَالرُّقْبَى بَاطِلَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله (١)). او رقبی باطل ده. د طرفینو رحمهما الله په نیز. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: جَائِزَةٌ) او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی، چه جائز ده. ، لِأَنَّ قَوْلَهُ دَارِي لَكَ تَمْلِيكٌ. ځکه چې دده قول «داری لك تملیك»

١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فی نتائج الأفكار (٥١٦\٧) وملتقی الأبحر (٥٠٨\٣) ومجمع الأنهر (٥٠٨\٣) والدر المنتقی (٥٠٨\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٢\٢)



دې. وَقَوْلُهُ رُقْبَى شَرْطٌ فَاسِدٌ كَالْعُمْرَى. او دده رقبی وئیل شرط فاسد دې. د عمری پشان.

**تشریح:** رقبی داده. چه مالك داسې اووائی. ، ، داری لك رقبی ، ، ددې حکم دادې، چه د طرفینو رحمهما الله حسن بن زیاد او د امام مالك رحمه الله په نیز باطل ده. او د امام ابویوسف، سفیان ثوری ، اسحاق، امام شافعی ، او د امام محمد رحمه الله په نیز جائز ده. ځکه چې امام ابوداوذ، ترمذی ، او ابن ماجه د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت کړې دې. «قال رسول الله ﷺ العمری جائزة لأهلها و الرقبی جائزة لأهلها» او امام نسائی رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعاً روایت کړې دې. «من أعمر عمری فهی لمن أعمرها جائزة و من أرقب رقبی فهی لمن أرقبها جائزة» دغه شان امام نسائی ، او ابن ماجه د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه مرفوعاً روایت کړې دې. «لا عمرة و لا رقبی فمن اعمر شیئاً أو أرقبه فهو له حیاته و مماته» په دې وجه هم چې دده په ، ، داری لك، ، وئیلو سره تملیك حاصل شو. او د رقبی شرط لګول، د شرط عمری پشان فاسد دې. نو هبه به صحیح وی. او شرط به باطل وی.

وَلَهُمَا طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. {أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَجَازَ الْعُمْرَى چې نبی کریم ﷺ عمری جائز ګرځولې ده. وَرَدَّ الرُّقْبَى} (١) او رقبی ئې رد کړې ده. وَلِأَنَّ مَعْنَى الرُّقْبَى عِنْدَهُمَا او ځکه چې د رقبی معنی ددوی په نیز داده. إِنْ مِتُّ قَبْلَكَ که زه ستا نه مخکې مړشوم. فَهُوَ لَكَ نو دا ستا لپاره ده. وَاللَّفْظُ مِنَ الْمُرَاقَبَةِ او دا لفظ د مراقبه نه دې. كَأَنَّهُ يُرَاقِبُ مَوْتَهُ، ګویا هغه دده د مرګ انتظار کوی. وَهَذَا تَعْلِيقُ التَّمْلِيكِ بِالْخَطَرِ او دا تملیك په خطره باندې معلق کول دی. فَبَطَلَ. نو باطل ده.

**تشریح:** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. «أن النبی ﷺ أجاز العمری و رد الرقبی» ، ، نبی کریم ﷺ عمری جائز ګرځولې ده. او رقبی ئې رد کړې ده. په مبسوط کې دی، چه دا اثر شعبی رحمه الله د قاضی شریح رحمه الله نه روایت کړې دې. او په دې وجه هم چې د طرفینو رحمهما الله په نیز د رقبی معنی داده. که زه ستا نه وړاندې مړشوم. نو دا کور ستا دې. او که زما نه مخکې ته مړشوې. نو زما دې. دا لفظ د مراقبه نه مشتق دې، چه ددې معنی ، ، انتظارکول، ، دی. ګویا په دوی کې هر یو د بل د مرګ انتظار کونکی دی. نو په دې کې د تملیك تعلیق بالخطر (یعنی متردد او مشکوك) دې. چه دا جائز نه ده. نو تعلیق به باطل وی.

وَإِذَا لَمْ تَصِحَّ او هرکله چې رقبی صحیح نشوه. تَكُونُ عَارِيَةً عِنْدَهُمَا نو عاریت به وی. د طرفینو رحمهما الله په نیز. لِأَنَّهُ يَتَضَمَّنُ إِطْلَاقَ الِانْتِفَاعِ بِهِ ځکه چې رقبی متضمن ده. ددې نه علی الاطلاق نفع حاصلولو ته.

**تشریح:** او هرکله چې تملیك باطل شو. رقبی صحیح نشوه. نو کوم کور ئې چې رقبی ورکړې دې. هغه به دده سره عاریت وی. ځکه چې رقبی ورکول، علی الاطلاق ددې نه نفع حاصلولو ته متضمن دې. په بنایه کې دی. چه په دې اړه کې د امام ابویوسف رحمه الله قول قوی دې. او هم دې ته صاحب د غایة البیان اصح وئیلی دی.

**فائده:** صاحب د اعلاء السنن لیکلی دی، چه ذکرشوی تیرشوی نصوص په دې اړه کې صریحی دی. چه د عمری پشان رقبه هم جائز ده. لکه څنګه چې امام ابویوسف او جمهور رحمهم الله هم ددې قائل دی. پاتې شو امام ابوحنیفه رحمه الله ، نو ابن حزم رحمه الله خو د سره دده اختلاف نه دې ذکر کړې. بلکه ددوی قول ئې هم د جمهورو پشان جواز ګرځولې دې. خود امام ابوحنیفه رحمه الله نه دا روایت صحیح دې، چه رقبی باطل ده. اوس که دده مطلب دادې، چه هبه خو علی الاطلاق صحیح او نافذ ده. او واهب اړخ ته د رجوع شرط یا د موهوب له د مرګ نه روسته دده وارثانو اړخ ته د رجوع شرط باطل دې. بیا خو هیڅ کلام نشته. او که دده مطلب دادې، چه

١) قال الزیلعی رحمه الله قلت غریب ومذهب أحمد رحمه الله كقول أبی یوسف رحمه الله فی جواز الرقبی قیاساً علی العمری واستدل لهما ابن الجوزی رحمه الله فی التحقیق بأحادیث منها ما أخرج النسائی (أی فی العمری رقم ٣٤٩٣) وابن ماجه عن عطاء عن حبیب ...عن بن عمر (رض) موقوفاً لاعمری ولا رقبی فی أعمر شیأ أو أرقبه فهو له فی حیاته ومماته، نصب الرایة (٣١١\٤)_

رقبى باطل ده.او هبه صحيح نه ده.نو ددې محمل دادې،چه په دې کې د موهوب له ملکيت د واهب په مرګ باندې معلق وي.په دې صورت کې حکم د بطلان کوم چې د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.اوحکم د جواز چې په تير شوی رواياتو کې ذکر دې.په دې کې هيڅ تعارض نه پاتې کيږی.ځکه چې رواياتو کې کوم حکم د جواز ذکر دې.دا هغه وخت دې.کله چې د موهوب له ملکيت منجز( يعنى متعين او جدا) وی.خو په دې کې د موهوب له د مرګ نه روسته واهب ارخ ته د واپس کاوه شرط وی.او په قول د ابوحنيفه رحمه الله کې د بطلان حکم هغه وخت دی.کله چې د موهوب له ملکيت ددې نه وړاندې د واهب په مرګ باندې معلق وی.نو هيڅ تعارض نشته.بيا خبره داده.چه د رقبى په تفسير کې اختلاف دې.لکه چې امام ابوداوُد په سنن کې د حضرت مجاهد رحمه الله نه ددې تفسير داسې نقل کړې دې. «الرقبى ان يقول الإنسان هو للآخر منى و منك» دغه ډول حافظ طبرانى رحمه الله په معجم اوسط کې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت کړې دې. «الرقبى ان تقول الإنسان هى للآخر منى و منك» ( ددې په سند کې يو راوى مختلف فيه دې.چه ده ته ابن معين ثقه ونيلى دی ،،کمافى مجمع الزوائد،،) ښکاره ده.چه په دې معنى کې رقبى باطل ده.ځکه چې دې کې د ملکيت تعليق په خطر( متردد او مشکوك) دې.

تنبيه⊙ صاحب د غاية البيان ونيلى دی.چه،، زما په نيز د امام ابويوسف رحمه الله قول اصح دی.ځکه چې دې کې زيات نه زيات دادی.چه شرط فاسد دې.او په فساد د شرط سره د هبة فساد نه لازميږی.ځکه چې هبه په شروطِ فاسده سره نه فاسديږی لکه څنګه چې عمرى کې دی.

Ⓐ صاحب د تتائج فرمائى.چه د موصوف دا خبره محل نظر ده.ځکه چې د هبة په شروطِ فاسده سره نه باطليدل هغه وخت دی.کله چې دا شرط په ابتداء کې د تمليك ثابتيدلو نه مانع نه وی.اوکه دا په ابتداء کې د تمليك ثابتيدلو نه مانع وی.نو بيا د هبة د صحت لپاره هيڅ مجال (طاقت) نشته.ځکه چې د تمليك نه بغير د هبة تحقق ممتنع دې.اوپه،، مانحن فيه،،( زير بحث مسئله) کې رقبى ابتداء د تمليك د ثبوت نه مانع دې.د صاحب د کافى د کلام نه زموږ ددې خبرې تائيد کيږی. قال و الأصل أن الشرط فى الهبة إذا كـان يمنع ثبوت الملك للحال يمنع صحة الهبة و إن كان لا يمنع ذالك صح الهبة و يبطل الشرط)

## فصل في الصدقة

ژباړه: ( دا) فصل د صدقة ( په بيان کی ) دی.

قَالَ: (وَالصَّدَقَةُ كَالْهِبَةِ) وصدقه پشان د هبه ده. لَاتَصِحُّ إِلَّا بِالْقَبْضِ) چې نه صحيح کيږی.مګر په قبضة سره لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ كَالْهِبَةِ ځکه چې دا هم تبرع ده.د هبه پشان. (فَلَاتَجُوزُفِي مُشَاعٍ يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ) نو جائز به نه وی.په قابل ويش مشترك شئ کې. لِمَابَيَّنَّافِي الْهِبَةِ هم په هغه وجه کومه چې موږ بيان کړې ده په هبه کې (وَلَارُجُوعَ فِي الصَّدَقَةِ) او په صدقه کې رجوع نه کيږی. لِأَنَّ الْمَقْصُودَهُوَالثَّوَابُ وَقَدْحَصَلَ. ځکه چې مقصود ثواب دې.اودا حاصل شو.

تشريح: صدقه د هبة پشان ده.چه د قبضې نه بغير نه صحيح کيږی.ځکه چې د هبة پشان صدقه هم يو تبرع او احسان دې.نو مشترك شئ چې د ويش قابل نه وی.د هغې صدقه به جائز نه وی.دليل هم هغه دې.کوم چې د هبة په بيان کې تير شو.چه صدقه کونى د صدقې قصد کړې دې.د تقسيمولو التزام ئې نه دې کړې.اوس که د مشترك شئ صدقه جائز اوګرځولې شی.نو چا ته ئې چې صدقه کړې دې.هغه به شريك وی.اوشريك چې کله تقسيمول اوغواړی.نو منظورول به لازم وی.نو په ده باندې داسې خبره لازمه شوه.د کومې چې ده التزام نه دې کړې.

Ⓐ بيا په صدقه او هبه کې دومره فرق دې،چه هبه کې رجوع کولې شی.او په صدقه کې رجوع نشی کولې.ځکه چې صدقه کولو سره ثواب حاصلول مقصود وی.اوهغه حاصل شو.نودا د هغه هبة پشان شوه.د کوم عوض چې



ور کړې شوې وی.

Ⓐ سوال* ثواب حاصليدل به خو په آخرت کې کيږی.بيا و قد حصل ونيل څنګه صحيح شو؟

جواب* د حصول نه مراد د ثواب حاصلولو وعده ده.او د ثواب د وعدې حاصلول قطعى دی. «لأن الله تعالى لا يخلف الميعاد»

وَكَذَا إِذَاتَصَدَّقَ عَلَى غَنِيٍّ اسْتِحْسَانًا او دغه شان (رجوع نشی کولې) کله ئې چې فقير ته صدقه ورکړله.استحسانا. لِأَنَّهُ قَدْيَقْصِدُ بِالصَّدَقَةِ عَلَى الْغَنِيِّ الثَّوَابَ. ځکه چې کله کله فقير ته صدقه ورکولو سره د ثواب قصد کولې شی. وَكَذَا إِذَاوَهَبَ الْفَقِيرَ او دغه شان کله ئې چې فقير ته هبه کړو. لِأَنَّ الْمَقْصُودَالثَّوَابُ ځکه چې مقصود هم دا ثواب دې. وَقَدْحَصَلَ. اوهغه حاصل شو.

تشريح: يعنى لکه څنګه چې فقير ته د صدقة ور کاوه په صورت کې رجوع نه کيږی.دغه ډول يو فقير ته په صدقه ورکولو کې هم رجوع نشی کولې.خودا په احسان مبنى ده.د قياس په رو سره جائز کيدل پکار دی.لکه چې زموږ بعض أصحاب هم ددې قائل دی.چه غنى ته صدقه يا هبه ورکول دواړه برابر دی.يعنى دواړو کې رجوع جائز ده.ځکه چې غنى ته د ور کاوه مقصد عوض حاصلول وی او هغه حاصل نشو.

Ⓐ وجه د استحسان داده.چه کله کله غنى ته په صدقه ور کاوه کې هم ثواب مقصود وی.لکه چې کوم سړې د نصاب مالك وی.او اهل و عيال ئې زيات وی.نو خلګ هغه ته د ثواب په اراده باندې ورکړه کوی.او په دې وجه په حالت د اشتباه ( او شك) کې هغه ته صدقه ور کاوه سره زكاة اداکيږی. «و لا رجوع له فيه بالإتفاق» او دده د صدقه لفظ ذکرکول هم په دې دلالت کوی.چه ده د عوض قصد اونکړو. «و مراعاة لفظه أولى من مراعاة حال التملك»

(وَمَنْ نَذَرَأَنْ يَتَصَدَّقَ بِمَالِهِ چاچه نذر کړو.خپل مال د صدقه کولو، يَتَصَدَّقُ بِجِنْسِ مَايَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ.نو صدقه دې کړی.د هغه جنس نه په کوم کې چې زكاة واجبيږی.

تشريح: يوسړی د خپل مال صدقه کاوه نذر اوکړو.يعنى داسې ئې اوونيل. «لله علي أن أتصدق مالي» نوپه ده به دهغه جنس مال صدقه کول لازم وی.په کوم کې چې زكاة واجبيږی.يعنى نقديت، د تجارت سامان، سائمه څاروی ، غله او عشری او ميوې، ددې نه علاوه د هيڅ مال صدقه لازم نه ده.

Ⓐ د امام زفر رحمه الله او په يو روايت کې د امام احمد رحمه الله په نيز د لفظ دعموم په وجه د پوره مال صدقه کول ضروری دی.د امام شعبى رحمه الله په نيز هيڅ هم نه لازميږی.د امام شافعى ،امام مالك رحمهما الله او په دوهم روايت کې د امام احمد رحمه الله په نيز د وصيت پشان به د ثلث مال ويستل لازم وی.په روضه کې دی. «مالى صدقة أو فى سبيل الله»

نو په دې اړه کې يو څو امله دی.د امام غزالى او قاضى حسين رحمهما الله په نيز اصح دادی.چه کلام مذکور لغوه دې.ځکه چې ده د الزام هيڅ لفظ نه دې ذکرکړې.دويمه وجه داده.چه مذکوره کلام داسې دې.لکه چې دې اووائی. «على التصدق بمالى» يعنى صدقه کول به لازم وی.

وَمَنْ نَذَرَأَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِلْكِهِ وچاچه نذر کړو.د خپل ملکيت صدقه کولو، لَزِمَهُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِالْجَمِيعِ) نو لازم به وی.په ده چې واړه مال صدقه کړی. وَيُرْوَى اودا هم نقل دی. أَنَّهُ وَالْأَوَّلَ سَوَاءٌ، چې دا اواول برابر دی. وَقَدْذَكَرْنَا الْفَرْقَ. وَوَجْهُ الرِّوَايَتَيْنِ فِي مَسَائِلِ الْقَضَاءِ او په دواړو کې فرق، اود دواړو روايتونو وجه موږ د قضاء په مسئلو کې بيان کړې ده.

تشريح: اوکه دا نذر ئې اوکړو.چه زما ملك صدقه دې.نو په ده به د کل مال صدقه کول لازم وی.د زكاة د مال خصوصيت به نه وی.ځکه چې دمال په نسبت ملك عام دې.ځکه چې سړې کله کله دغير مال هم مالك کيږی.لکه نکاح، قصاص، شراب. نو بيا ددې په عموم باندې عمل کول ضروری دی.اويو روايت دا هم

دي.چه مال او ملك دواړه برابر دي.ځكه چې ملك د ربط او شد نه عبارت دې.او مال هغې ته وائي.كوم ارخ ته چې زړه مائل وي. «فيكون في معنى الربط و الشد ليتناسبان» دا د حاكم شهيد روايت دې.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه د مال او ملك توپير او د دواړو روايتونو وجه موږ د قضاء په مسئلو كې ذكر كړې ده.يعنى «مالي صدقة على المساكين» مسئلي لاندې، د تشريح لپاره طلوع النيرين (ص ٢٠٦ ج ٢) اوګورئ.

| (وَيُقَالُ لَهُ) او ده ته به وئيلې شي. أَمْسِكْ مَا تُنْفِقُهُ عَلَى نَفْسِكَ وَعِيَالِكَ إِلَى أَنْ تَكْتَسِبَ، چې ته خان سره اوساته دومره، څومره چې ته خرچ كړې پخپل ذات، او پخپلو بچو باندې د مال ګټلو پورې، فَإِذَا اكْتَسَبَ مَالًا نو هر كله چې دې مال اوګټي.(مزدوري اوكړي) يَتَصَدَّقُ بِمِثْلِ مَا أَنْفَقَ) نو صدقه دې كړي.هغومره، څومره چې ده خرچ كړي وو. وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ اودا موږ وړاندې ذكر كړې دي. |
|---|

**تشريح:** هر كله چې د ذكر شوي حكم مطابق په ده باندې پوره مال صدقه كول لازم شو.نو اوس به خالي لاس خپل ژوند څنګه تيره وي ؟ هم دا به كيږي.چه د چا څخه به پور اخلي.خو ممكن ده چې پور ملاو نشي.او كه ملاو شي.نو كيداى شي.چه دا هغه ادانكړې شي.او په پور كي مړ شي.په دې صورت به په ده باندې سخته ګناه وي.صاحب د كفاية رحمه الله فرمائي.چه د كوم وخته پورې دې مزدوري كوي.او مال حاصلوي.هغه وخته پورې دې دومره مال اوساتي.چه پخپل ذات او پخپل اهل وعيال باندې ئې خرچ كړي.بيا كله چې مال حاصل شي.نو هغومره دې صدقه كړي.څومره چې د خرچې لپاره باته ساتلې وو.

**فائده⑥** د خان سره د ساتلو مقدار امام محمد رحمه الله نه په مبسوط كي ذكر كړې دې.نه جامع صغير كي.البته مشائخو وئيلي دي.كه دا سړې زميندار (دهقان) وي.نو د كال په اندازه دې مال اوساتي.ځكه چې زميندار لپاره قوت هر كال نوې كيږي.اوكه دا سړې تاجر (او سوداګر) وي.نود يو مياشت خوراك دې اوساتي.اوكه دې پيشه ور او كاريګر وي.نو صرف د يوې ورځې خوراك دې اوساتي. «لأنه يتجدد له قوت كل يوم» ﴿سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝﴾

## (كِتَابُ الْإِجَارَاتِ)

ژباړه: (دا) كتاب د اجارې (په بيان كې) دې.

**تشريح:** د تمليك اعيان بلاعوض (يعنى د هبه) د احكامونه د فراغت نه روسته د تمليك منافع بالعوض (يعنى د اجارې) احكام بيانوي.او اول يعنى هبه ئې ځكه مقدم كړه.چه په هغې كي تمليك د اعيان وي.او په دوهم يعنى اجاره كي تمليك د منافعو وي.او اعيان په منافعو باندې مقدم وي.او په اول (هبه) كي عوض نه وي.او په دوهم يعنى اجاره كي عوض وي.او عدم په وجود باندې مقدم وي.

د اجارې اقسام

**تشريح:** اجارات د اجارة جمع ده.په عنوان كي ئې لفظ د اجارات جمع راوړلو سره دې اړخ ته اشاره كړې ده.چه ددې مختلف انواع دي.① د اجارې يوه نوع داده.چه په دې كي منفعت په ذريعه د مودې معلوم وي.لكه مثلاً د اوسيدو لپاره كورونه، او كروندې (زميندارۍ) لپاره زمكې په اجاره باندې اخستل.② دويمه نوع داده.چه په دې كي بيانولو سره منفعت معلوميږي.لكه مثلاً رنګريز د كپړې رنګ كاوه يا درزي د كپړې ګنډلو لپاره اجرت باندې اخستل.③ دريمه نوع داده.چه په دې كي نفع تعين او اشاره سره معلوميږي.لكه قُلي (بار اوړونكې مزدور) په كرايه باندې اخستل.چه هغه دا غله (غنم وغيره) د فلانى مقام پورې اورسوي.په كتاب كي ئې چې روسته دا وئيلي دي.چه «و المنافع تارةً تصير معلومة بالمدة و تارةً تصير معلومةً بنفسه و تارةً تصير معلومةً بالتعين و الإشارة» په دې سره هم ددې انواع ثلاثه بيان دې.چه ددې تفصيل روسته نږدې راروان دي.

[illegible]ې لغوى تحقيقاجاره په لغت كي د اجرت اسم دې.هغه مزدورۍ ته وائي.چه د هغې استحقاق په عمل



خير باندې وي.په دې وجه ددې په ذريعه دعا وركولې شي.او وئيلې شي چې «أجرك الله ، أعظم الله أجرك» بيا دا ماده د ډيرو معانو لپاره استعمال شوې ده.

① تعويض يعنى بدله وركول. ،،تقول:أجره (ن،ض) الله اجـرا»: بدله وركول، هم ددې نه اجر په معنى د ثواب دې. «لأن الله تعالى يعوض العبد به» قال الله تعالى ﴿فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ ﴿وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ﴾ حديث كي دي. «لك اجران اجرالسر و أجرا العلانية» او هم ددې نه د ښځې مهر ته اجر وئيلې شي.ځكه چې دا د هغې د بضع نه د نفع اخستلو عوض وي.قال الله تعالى : ﴿آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ﴾ ② په معنى د پټئ يعنى جوړاويدل. «يقال أجر (ن،ض) العظم أجرا»: مات هډوكې سيدها جوړاؤ (پيوند) شو. ③مزدوري وركول: په قهستانى كي دي.چه اجاره اګرچه په اصل كي د ،،اجر زيد يا د جر (بالضم) مصدر دې.په معنى د اجير كيدلو.خو ددې استعمال اكثر د ايجار مصدر په معنى كي وي.او اسم فاعل په دې معنى كي نه راځي.(كذا في الرضى).د بعض اهل لغت په نيز اجاره د فعاله په وزن په وزن باندې مفاعلت دې.ددوى په نيز اجر د فاعل په وزن دې.د افعل په وزن نه دې.نو اسم فاعل به مواجر راځي.خو صاحب د اساس دې ته غلط وئيلي دي.چه اسم فاعل موجر دې.مواجر نه دې. «و قال صاحب العين آجرتُ مملوكي أوجره ايجاراً فهو مـوجر» البته صاحب د كشاف په مقدمة الادب كي ،،اجره الدار،، د باب افعال او مفاعله دواړو نه منلې دي.

### د اجارې لغوى او شرعي تعريف

| (الْإِجَارَةُ: عَقْدٌ عَلَى الْمَنَافِعِ بِعِوَضٍ) اجاره داسې عقد دې.چه په منافعو باندې په عوض واقع كيږي. |
|---|

**تشريح:** صاحب د كنز وغيره د اجارة اصطلاحي تعريف داسې كړې دې. «الإجارة بيع منفعة معلومة بـأجر معلـوم» يعنى معلوم نفع د معلوم عوض په بدله كي خرڅولو ته اجاره وائي.كه عوض مالي وي.او كه غير مالي وي.غير مالي لكه منافع مثلاً د كور اوسيدل سوارلۍ باندې د سوريدلو په عوض خرڅولو.يا عوض دين وي.لكه مكيل او موزون او عدد متقارب. يا عين وي.لكه څاروى او كپړې وغيره.

ؔ صاحب د كتاب فرمائي. «الإجارة عقد على المنافع بعـوض....» يعنى اجاره داسې عقد دې.چه په منافعو باندې په عوض سره واقع كيږي.په دې كي د منافعو د قيد په ذريعه د بيع داعيان نه، او د ،،بعوض،، په ذريعه د عاريت نه احتراز دې.سعدى چلپى وائي.كه صاحب د كتاب د عقد په ځائې تمليك وئيلې وو.نو غوره به وو.چه په دې صورت كي به تعريف نكاح ته نه شامليدلو.ځكه چې نكاح كي تمليك نه وي.نكاح خو په عوض سره د منافعو جائزكيدلو نوم دې.لكه څنګه چې علامه زيلعى رحمه الله په شرح د كنز كي ددې صراحت كړې دې.په خلاف دكتاب والا د تعريف،چه دا نكاح ته هم ګډ دې.البته كه په قرينه د شهرت سره د عقد نه مراد عقد د تمليك واخستلې شي.

ؔ صاحب د نتائج فرمائي.چه د موصوف داخبره صحيح نه ده.ځكه چې په تمليك المنافع سره هم دا خبره پاتې كيږي.هيڅ توپير نه كيږي.ځكه چې نكاح كي يقيني طور باندې مالك كيدل دي.استباحت محضه نه وي.(يعنى عارضى ملكيت نه وي) ګني ددې عوض به نه واجبيدلو.په دې وجه د كتابونو په ټولو متونو او شروحاتو كي ددې تصريح موجود ده.چه نكاح شرعى د تمليك د منافعو لپاره موضوع شوې ده.او دا خبره هم معلومه ده.چه نكاح د اباحت او احلال په لفظ سره نه منعقد كيږي.ځكه چې دا الفاظ دملك متعه سبب نه جوړيږي. بلكه د كتاب النكاح په پيل كي علامه زيلعى رحمه الله پخپله هم ددې اعتراف (او اقرار) كړې دې.چه «أن النكاح سبب لملك المتعة و لهذا لا ينعقد بلفظ الإباحة....» .

| لِأَنَّ الْإِجَارَةَ فِي اللُّغَةِ بَيْعُ الْمَنَافِعِ، ځكه چې اجاره لغت كي منافع خرڅولو ته وائي. |
|---|

**تشريح:** يعنى اجاره په لغت كي هم د منافعو خرڅولو ته وائي.نو شرعى معنى د لغوى معنى موافق ده.په دې باندې علامه عينى وغيره دا اعتراض نقل كړې دې.چه لويديخ وغيره د لغاتو په كتابونو كي ددې خبرې صراحت دې.چه اجاره د اجرت اسم دې.او بيع د منافعو ته ايجار وائي.اجاره نه وائي.علامه عينى رحمه الله

فرمائي،چه ددې ځواب داسې ممكن دې چه كيداې شي، اجاره مصدر وي.لكه چې د كتب مصدر كتابة دې،، فيستقيم الكلام،،

ﷺ خو په قول د صاحب نتائج دا ځواب ځكه نه چليږي.چه د ثلاثي مصادر سماعي دى.قياسي نه دى.نو د كتابة مصدر كيدل ددې تقاضه نه كوي چه اجاره هم د اجر مصدر وي.ځكه چې د كتابة مصدر كيدل سماعي ( اوريدلې شوې) دې.په خلاف د اجارة،چه ددې مصدر كيدل سماعي نه دې.

ﷺ بيا دلته صاحب د كتاب اول د اجارة شرعي مفهوم بيان كړې دې.بيا ئې مفهوم لغوي بيان كړې دې. حالانكه د قاعدې مطابق ددې عكس كيدل پكار دى.د صاحب د عنايه رحمه الله د قول مطابق ددې وجه داده.چه داجارة شرعي مفهوم چونكه د لغوي مفهوم موافق دې.او موصوف د اجارې شرعي حيثيت بيانول غواړي.نو شرعي مفهوم مقدم كول اولى ( او غوره) شو.

ﷺ صاحب د نتائج رحمه الله هم په دې وجه دا اعتراض كړې دې.چه كه هم دا خبره وي.بيا خو په ټولو ځايونو كې شرعي مفهوم مقدم كول پكار دى.حالانكه د ټولو مصنفينو طريقه ددې خلاف ده.چه هغوى ړومبې لغوي مفهوم بيانوى.ځكه چې لغوي مفهوم اصلي دې.نو ددې غوره ځواب دادې.چه دلته علامه مرغيناني رحمه الله د استدلال طريقه اختيار كړې ده.خو صغرى ئې نه ده ذكر كړې. «فكأنه قال لأن معنى الإجارة في الشرع هو معناها في اللغة و معناها في اللغة بيع المنافع»

## اجاره د قياس په نظر كښې

> وَالْقِيَاسُ يَأْبَى جَوَازَهُ،او قياس انكار كوي.ددې د جواز.لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ الْمَنْفَعَةُ وَهِيَ مَعْدُومَةٌ،ځكه چې په كوم شي عقد شوې دې.د هغې د سره وجود نشته.

**تشريح:** كه د قياس په رو سره اوكتلې شي.نو اجاره ناجائز معلوميږي.ځكه چې ددې كې معقود عليه منفعت وي.چه د عقد كاوه په وخت موجود نه وي.بلكه ددې وجود روسته كيږي.او روسته موجوديدونكې شي ته د تمليك اضافت نه صحيح كيږي.ځكه چې د كوم شي وجود نه وي.د هغې عقد كول هم نه صحيح كيږي.هغه خو ليس بشئ وي.او د وجود نه روسته د عقد د انعقاد لپاره دمعقود عليه مملكوك كيدل ضروري دى.حالانكه معدوم مملكوك كيدلو سره نه متصف كيږي.اوعقد د وجود زماني ته هم نشي مضاف كيدلې.ځكه چې معاوضاتو كې د اضافت احتمال نه وي.

ﷺ بعض حضراتو د خلاف قياس كيدلو دا وجه بيان كړې ده.چه د عقد موجب دادې.چه معقودعليه في الحال اوسپارلې شي.او په اجاره كې دا خبره نه وي.خودا وجه ځكه صحيح نه ده.چه د عالمانو په دې اتفاق دې.چه د عرف د تقاضې په وجه تاخير د تسليم جائز دې.لكه كه يو سړې د خزانې والا ځانې خرخ كړي.چه په هغې كې ډير زيات سامان وي.چه هغه په يوه ورځ كې نشي منتقل كيدې.نو په ده باندې دواړه ښار ځاروى لګيا كول، او په يو وخت كې منتقل نه واجبيږي.بلكه دومره وخت د عرف د تقاضې په وجه وركول ضروري وي.چه په دې كې هغه دا سامان بل ځائې ته منتقل كړي.

> وَإِضَافَةُ التَّمْلِيكِ إِلَى مَا سَيُوجَدُ،او د ملك كيدلو اضافت داسې شي ته كوم چې به روسته موجود كيږي.لَا يَصِحُّ إِلَّا أَنَّا جَوَّزْنَاهُ لِحَاجَةِ النَّاسِ إِلَيْهِ،نه صحيح كيږي.خو موږ دا جائز ګرځولې ده.د خلګو د اړتيا په وجه.

**تشريح:** يعنى فقهي طور باندې خو قياس هم دا وائي.چه اجاره جائز كيدل پكار نه دى.خو شريعت د خلګو د اړتيا په لحاظ دا جائز ګرځولې ده.ځكه چې انسان ته د رهائش وغيره لپاره د كور اړتيا وي.خو دومره روپۍ نه وي.چه كور واخلي.او كله روپۍ ور سره وي.خو پخپله كاروبار نشي كولې. بهرحال فقير د مال محتاج وي.او غنى د عمل كاوه محتاج وي.اوس كه اجاره جائز اونه ګرځولې شي.نو خلګو باندې به ددوى د ژوند فاندې تنګي شي.

> وَقَدْ شَهِدَتْ بِصِحَّتِهَا الْآثَارُ،او ددې د صحت آثار هم شاهد دى.وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ،او د نبى كريم ﷺ ارشاد دې.{



> أَعْطُوا الْأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ}(۱) چې مزدور ته دده د خولې اوچيدلو نه وړاندې د هغه اجرت وركړئ.وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ،او د نبى كريم ﷺ ارشاد دې.{مَنِ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَلْيُعْلِمْهُ أَجْرَهُ} چې كوم سړې اجير په اجاره باندې واخلي،نو پكار ده.چه د هغه د اجرت نه ئې خبر كړي.

**تشريح:** په قرآن او حديث كې د اجارة د صحت شهادت موجود دې.د حضرت موسى او شعيب عليهما السلام په قصه كې د الله تعالى ارشاد دې. ﴿قَالَ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ عَلَى أَن تَأْجُرَنِي ثَمَانِيَ حِجَجٍ﴾ ،فرمائي.زه غواړم.چه په نكاح دركړم تا ته يوه لور،په دې خپلو دوې (دوه) لونړو كې ، په دې شرط چې ته زما نوكري اوكړې اته كاله،، بل ځائې ارشاد دې. ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ بيا كه دوى شيدې وركړي.ستاسو په خاطر نو وركړئ دوى ته د دوې بدله،،او د حضرت موسى او حضرت خضر عليهما السلام په قصه كې ارشاد دې. ﴿قَالَ لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا﴾ او ونيل موسى عليه السلام: كه تا غوښتلې نو اخستې به دې وه په دې باندې مزدوري،،احاديث او آثار هم په كثرت سره موجود دى.

① حديث د ابوهريره رضي الله عنه: قال رسول الله ﷺ «أعطوا الأجير أجره قبل أن يجف عرقه» ② حديث د ابو سعيد خدرى رضي الله عنه: «أن النبي ﷺ قال من استاجر أجيرا فليسلم له أجرته ،،ولفظ محمد في الآثار ،، فليعلمه،، ③ په صحيح بخارى كې حديث د ابوهريره رضي الله عنه: «قال رسول الله ﷺ قال الله تعالى: ثلاثة أنا خصمهم يوم القيامة رجل أعطى بي ثم غدر و رجل باع حرا فأكل ثمنه و رجل استاجر أجيراً فاستوفى منه و لم يعطه أجره» ،،نبى كريم ﷺ اوفرمائيل: الله تعالى ارشاد فرمائي.چه درې سړى دى.چه هغوى سره به زه د قيامت په ورځ جګړه كوم.يو هغه كس چې هغه زما د قسم په ذريعه څه عهد اوكړو.بيا ئې مات كړو. دوهم چاچه آزاد سړې خرڅ كړو.اود هغې قيمت ئې اوخوړلو.دريم هغه كس چې اجير ئې په مزدورۍ اونيولو.اود هغه نه ئې پوره كار واخستلو.خو هغه ته ئې ددې مزدوري ورنكړله،،

④ ايضاً : «ما بعث الله نبياً إلا رعى الغنم فقال أصحابه و أنت ﷺ فقال: نعم كنت أرعى على قراريط لأهل مكة» ،،الله تعالى داسې هيڅ نبى نه دې رالیګلې.چه هغه وزه نه وى څرولې،د نبى كريم ﷺ صحابو رضي الله عنهم پوښتنه اوكړو.تاسو ﷺ هم (پوولې دى )؟ وې فرمائيل.آؤ ما په يو څو قيراطه اجرت باندې د مكې د خلګو وزه پوولې دى ،،

## اجاره كله منعقد كيږي؟

> وَتَنْعَقِدُ سَاعَةً فَسَاعَةً عَلَى حَسَبِ حُدُوثِ الْمَنْفَعَةِ،او اجاره منعقد كيږي.و خت سره سره د نفع ښكاره كيدلو موافق،وَالدَّارُ أُقِيمَتْ مَقَامَ الْمَنْفَعَةِ فِي حَقِّ إِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَيْهَا او كور قائم مقام ګرځولې شوې دې.د منفعت،دده اړخ ته د عقد د اضافت په حق كې ،لِيَرْتَبِطَ الْإِيجَابُ بِالْقَبُولِ، چې ايجاب قبول سره اوتړلې شي.ثُمَّ عَمَلُهُ يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَنْفَعَةِ مِلْكًا وَاسْتِحْقَاقًا حَالَ وُجُودِ الْمَنْفَعَةِ،بيا ددې عمل ښكاره كيږي.د منفعت په حق كې د تملك او استحقاق په طور د منفعت د وجود په حالت كې.

**تشريح:** داجارة انعقاد په نيز د احنافو رحمهم الله دعقد اجاره انعقاد وخت سره سره د نفع ښكاره كيدلو موافق كيږي.او منافع چونكه بالفعل نه موجود كيږي.په دې وجه كور وغيره كوم ئې چې په اجاره باندې اخستې دې.دا د منافعو قائم مقام اوګرځولې شو.چه عقد اجاره هم دې كور اړخ ته مضاف كيږي.چه قبول سره د ايجاب ربط كيږي.بيا كله چې منفعت حاصل شي.نود تملك او استحقاق په طور د عقد اجاره عمل د منفعت په حق كې ښكاره كيږي.يعنى د منفعت د وجود په حالت كې مستاجر ته دده ملكيت او استحقاق دواړه په يوځائې حاصليږي. په خلاف د بيع عين،چه په عين شئ كې ملكيت في الحال ثابتيږي.او استحقاق د نقد ثمن وخته پورې مؤخر كيږي.دا تفصيل زموږ په نيز دې.

---

۱) عن ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه ابن ماجه في كتاب الأحكام باب أجر الأجراء رقم ۲٤٤٣)_من حديث ابى هريرة رضي الله عنه أخرجه عبدالرزاق في البيوع (۳۲۵)_

د اجارۀ انعقاد په نيز دامام شافعي رحمه الله د امام شافعي رحمه الله په نيز د عقد صحيح كاوه د اړتيا په لحاظ معدوم منافع حكماً موجود ګرځولي شوي دي.او وجه ددې داده.چه د عقد جائز كيدلو لپاره دا شرط دې.چه معقود عليه في نفسه موجود او مقدور التسليم وي.او بل اړخ ته شارع ته دا حق حاصل دې.چه د كوم شئ په حقيقت كي وجود نه وي.هغه د خلګو د اړتيا په خاطر حكماً موجود اوګرځوي.لكه مثلاً كومه نطفه چې په نس كي وي.هغه په حقيقت كي بې جانه (بې سا او بې روحه) وي.هغه شريعت د وراثت، د عتق، او وصيت په حق كي حكماً ژوندې منلې دې.او مرتد شوې چې د كافرانو په ملك كي تللې وي.هغه په حقيقت كي ژوندې دې.خو شريعت حكماً مړ ګرځولي ې.ددې نه هم زيات نږدې مثال بيع سلم دې.چه دا په حقيقت كي د معدوم شئ بيع وي.خو شريعت د سلم د جواز په حق كي دا معدوم (او غير موجود) حكماً موجود منلې دې.

د احنافو د اړخه ځوابونه دا وايو.چه د عقد جواز په دې اعتبار سره نه دې.چه معدوم منفعت حكماً موجود ګرځولې شوې دې.اودا څنګه كيداې شي ؟ حالانكه په حقيقت كي موجوديدونكي منفعت هم عقد نه قبلوي.څكه چې منافع خو اعراض وي.او په دوې (دوه) وختونوكي د اعراض پاته پاتې كيدلو تصور نشي كيدلې.اود كوم شئ لپاره چې بقاء نه وي.هغه په حكم د عقد سره سپارل نا ممكن دي.نودا منفعت د عقد معاوضه محل نشي كيدې.بلكه د عقد جواز په دې اعتبار سره دې.چه دكوم كور څخه به نفع اخستلې شي.هغه دعقد اجاره صحيح كيدلو په حق كي د منفعت قائم مقام ګرځولې شوې دې.چه ايجاب د قبول سره مربوط (يعني مولښتی) شي.اوكله چې دا منفعت حاصل شي.هغه وخت به مستاجر ته د هغه ملكيت او استحقاق حاصل شي.

Ⓐ زموږ دا طريقه د معدوم موجود ګرځولو نه ډيره غوره ده.څكه چې سبب د مسبب قائم مقام ګرځول، خو په شريعت كي چرته هم نه ملاويږي.لكه چې شريعت سفر د مشقت قائم مقام، او بلوغ د كمال عقل قائم مقام ګرځولې دې.ددې نه علاوه نور ډير مثالونه په شرع كي موجود دي.خو معدوم موجود منل بالكل خلاف اصل دي.چه ددې هيڅ مثال نشته.

Ⓐ پاتې شو مذكوره مقيس عليه، نود عقد سلم جواز په دې طور باندې نه دې.چه په دې كي مسلم فيه ته د عين شئ حكم ملاو شو.بلكه ددې جواز په دې اعتبار سره دې.چه ذمه كوم چې د مسلم فيه محل دې.هغه د سلم د جواز په حق كي د مسلم فيه قائم مقام كړې شو.يا په دې اعتبار سره دې.چه مسلم فيه ته د ثمن حكم وركړې شوې دې.ددې نه علاوه يوځيز حكماً مقدر هغه وخت كيدلې شي.كله چې د هغې تصور په حقيقت كي ممكن وي.او په مسلم فيه كي دا خبره موجود ده.چه ددې د حقيقي وجود تصور ممكن دې.نو حكماً به هم ددې تقدير ممكن وي.منافع كوم به چې په موده د اجاره كي پيدا كيږي.نود هغې په يو ځاني حقيقي وجود غيرمتصور دې.نو حكماً به هم غير متصور وي. «و كذا الحي يتصور فيه الموت و الموت يتصور فيه الحياة» (كفايه)

### د اجارهٔ صحيح كيدلو شرطونه

| |
|---|
| (وَلَا يَصِحُّ) واجاره نه صحيح كيږي. حَتّٰى تَكُونَ الْمَنَافِعُ مَعْلُومَةً، ترڅو چې منافع معلوم وي. وَالْأُجْرَةُ مَعْلُومَةً) او اجرت هم معلوم وي. لِمَا رَوَيْنَا، د هغه حديث په وجه كوم چې موږ روايت كړو. وَلِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِي الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ وَبَدَلِهِ تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ او څكه چې معقود عليه او ددپه عوض كي د جهالت كيدل ، جګړې ته رسوي. كَجَهَالَةِ الثَّمَنِ وَالْمُثْمَنِ فِي الْبَيْعِ لكه په بيع كي د ثمن او مبيع مجهول كيدلو كي ، |

**تشريح:** داجارۀ د صحت لپاره د منافعو اود اجرت معلوميدل ضروري دي. د دې نه بغير اجاره نه صحيح كيږي.

**نقلي دليل** ◉ په دليل د مذكوره حديث «من استاجر اجيراً فليعلمه اجره» دا حديث د اجرت معلوميدلو په شرط



باندې په طريقه د عبارت دلالت كوي.اود منافع معلوميدلو په شرط باندې په طريقه د دلالت دال دې.څكه چې عقد اجاره كي معقود عليه منفعت وي.او اجرت معقود به.او عقودو كي اصل معقود عليه وي.او معقود به د تابع په مرتبه كي وي.نو هركله چې حديث نه د تابع معلوميدل شرط اوګرځولي شو.نود متبوع معلوميدل به په طريقه اولي شرط وي.دغه ډول د منافعو نه خبرول، او د اجرت بيانولو دواړو په شرط باندې د حديث نه استدلال صحيح شو.

**عقلي دليل** ◉ او عقلي دليل دادې.چه په معقود عليه (منافعو) كي او ددې په بدل (اجرت) كي جهالت كيدل جګړې پورې رسوي.لكه څنګه چې په عقد بيع كي ، ثمن او مبيع مجهول كيدلو سره جګړې پورې نوبت رسيږي.

| |
|---|
| (وَمَا جَازَ أَنْ يَكُونَ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ) و كوم شئ چې ثمن كيداې شي.په بيع كي جَازَ أَنْ يَكُونَ أُجْرَةً فِي الْإِجَارَةِ) هغه اجرت كيداې شي.په اجاره كي لِأَنَّ الْأُجْرَةَ ثَمَنُ الْمَنْفَعَةِ،څكه چې اجرت د منفعت ثمن دې. فَتُعْتَبَرُ بِثَمَنِ الْمَبِيعِ. نودا به په ثمن د مبيع باندې قياس كولې شي. |

**تشريح:** ① كوم شئ چې په عقد بيع كي ثمن كيداې شي.لكه نقود، مكيل، او موزون. نو هغه په عقد اجاره كي هم اجرت كيداې شي.څكه چې اجرت د نفع قيمت دې.لكه څنګه چې په عقد بيع كي د مبيع ثمن وي.نو اجرت به د مبيع په ثمن باندې قياس كولې شي. ② او كوم شئ چې په عقد بيع كي د ثمن كيدلو لائق نه دې.په اجاره كي هغه هم اجرت كيداې شي.لكه مثلاً هغه اصلي شيان كوم چې د مثلي څيزونو څني نه دي.مثلاً څاروي او عدديات متفاوته، چې دا په اجاره كي اجرت كيداې شي.حالانكه په عقد بيع كي ثمن نشي كيدې.څكه چې بيوع كي دا خبره ثابت شوې ده.چه اموال په درې قسمه وي.[1] يو ثمن محض لكه دراهم،[2] دوهم مبيع محض لكه هغه اعيان كوم چې د ذوات الامثال څني نه دي.[3] دريم هغه كوم چې ددې دواړو په منځ منځ كي دي.لكه مكيلات او موزونات.

Ⓐ نود صاحب كتاب دا وئيل چې «قوله: و ما جاز أن يكون ثمناً في البيع جاز أن يكون اجـرة....» په دې سره د غير ثمن نفي نه كيږي.څكه چې اجرت خو مالي عوض دې.نو كوم شئ چې مال وي.او عوض كيداې شي.نو هرداسې شئ اجرت هم كيداې شي.په خلاف د ثمن چې ثمن هغه ته وائي.كوم چې دچا په ذمه واجب وي. «يختص بما يثبت في الذمة كالنقود» بيا دا وضاحت هم ضروري دې.چه د اعيان اجرت كيدل هم هغه وخت صحيح دي.لكه كور د معين كپړو په عوض اخستل.

| |
|---|
| وَمَا لَا يَصْلُحُ ثَمَنًا او كوم شئ چې د ثمن كيدلو لائق نه دې. يَصْلُحُ أُجْرَةً أَيْضًا كَالْأَعْيَانِ. هغه هم اجرت كيداې شي.لكه اعيان، فَهٰذَا اللَّفْظُ لَا يَنْفِي صَلَاحِيَةَ غَيْرِهِ،نودا لفظ د غير ثمن نفي نه كوي. لِأَنَّهُ عِوَضٌ مَالِيٌّ څكه چې دا مالي عوض دې. |

**تشريح:** «قوله: كالأعيان....» د اعيان نه مراد هغه اعيان دي.كوم چې دمثلي څيزونو څني نه وي.لكه حيوان (څاروي) او كپړه. اوس په دې مثال باندې صاحب د عنايه رحمه الله اعتراض كړې دې.

Ⓐ اعتراض • دادې.چه عقد مقايضه هم يو بيع ده.حالانكه په دې كي د دواړو اړخه شئ عين وي.نوكه په عين كي د ثمن كيدلو صلاحيت نه وي.نود عقد مقايضه بيع د ثمن نه بغير لازميږي.چه دا باطل ده؟

ځواب • دادې.چه د ثمن دوې (دوه) معاني دي. ① يودا چې د چا په ذمه واجب وي.د فقهاؤ په عرف كي ددې هم دا معنى متعارف ده.اود علامه مرغيناني رحمه الله مراد هم دادې.ددې معنى په لحاظ سره د مثلي څيزونو نه علاوه په نورو څيزونو كي د ثمن كيدلو صلاحيت نه وي.او نه ددې معنى په لحاظ سره د عقد مقايضه بيع بلا ثمن لازميږي. ② د ثمن دويمه معنى داده.چه ثمن هغه دې.كوم چې د بيع عوض وي.په لويديځ كتاب كي ددې معنى صراحت موجود دې.د ثمن دا معنى دين او عين دواړو ته عام ده.اوهم دا هغه ثمن دې.چه ددې نه بغير بيع نه متحقق كيږي.او هم ددې معنى په لحاظ سره د عقد مقايضه بيع بلاثمن كيدل

لازمېږي چه دا باطل ده.خو مذكوره قول «وما لا يصلح ثمنا يصلح اجرة ايضا كالاعيان» كي د ثمن نه د صاحب هدايه رحمه الله مراد دا معنی نه ده. «فلا يرد نقضا بالمزبور»

## د منافع معلومولو درې طريقې

(وَالْمَنَافِعُ تَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً بِالْمُدَّةِ او منافع كله د مودې په ذريعه معلومېږي. كَاسْتِئْجَارِ الدُّورِ لِلسُّكْنَى لكه په اجرت باندې اخستل.كورونه لپاره د اوسېدلو، وَالْأَرَضِينَ لِلزِّرَاعَةِ او زمكې لپاره د زمينداري. فَيَصِحُّ الْعَقْدُ عَلَى مُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ نو صحيح كېږي عقد په موده معلومه باندې. أَيِّ مُدَّةٍ كَانَتْ) كومه موده چې هم وي. لِأَنَّ الْمُدَّةَ إِذَا كَانَتْ مَعْلُومَةً ځكه چې كله موده معلومه وي. كَانَ قَدْرُ الْمَنْفَعَةِ فِيهَا مَعْلُومًا نو په دې كې به د منفعت مقدار معلوم وي. إِذَا كَانَتِ الْمَنْفَعَةُ لَا تَتَفَاوَتُ. كله چې منفعت كم او زيات نه وي. وَقَوْلُهُ أَيِّ مُدَّةٍ اودا وئيل، اى مدة كانت،، كَانَتْ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يَجُوزُ اشاره ده.دې خبرې ارخ ته،چه اجاره جائز ده. طَالَتِ الْمُدَّةُ أَوْ قَصُرَتْ كه موده كمه وي.او كه زياته وي. لِكَوْنِهَا مَعْلُومَةً ددې د معلوميدلو وَلِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَيْهَا عَسَى،او ددې د ارتيا متحقق كيدلو په وجه. إِلَّا أَنَّ فِي الْأَوْقَافِ لَا تَجُوزُ الْإِجَارَةُ الطَّوِيلَةُ خو كوم شيان چې وقف وي.هغې كي طويل (اوږده) اجاره جائز نه ده. كَيْ لَا يَدَّعِي الْمُسْتَأْجِرُ مِلْكَهَا چې مستاجر ددې د ملكيت دعوه اونكړي. وَهِيَ مَا زَادَ عَلَى ثَلَاثِ سِنِينَ او طويل موده هغه ده.كومه چې د دريو كالو نه زياته وي. هُوَ الْمُخْتَارُ هم دا قول مختار دې.

**تشريح:** د اجارې د صحت لپاره مزدورى او منفعت دواړه معلوميدل ضرورى دي.د مزدورۍ په معلوم كيدلو كي خو هيڅ خفاء نشته.البته په منفعت معلوميدلو كي څه خبره مخفی ده.په دې وجه هغه بيانوي.د منفعت معلوميدلو درې طريقې دي.اول داچه د هغې موده بيان كړې شي.چه مودې بيانولو سره د نفع مقدار معلوميدل يو لازمی خبره ده.په دې شرط چې منفعت متفاوت نه وي.مثلاً د كور په اجاره كي دا بيانول،چه د دومره مودې پورې د رهائش (او اوسيدلو) لپاره دې.اوكه منفعت متفاوت وي.لكه مځكه ئې د زمينداري لپاره اجاره باندې واخستله.نو د مودې معلوميدلو سره سره دا هم ضروري ده.چه په دې كې به د كومې غلې كرونده كوي.هركله چې ئې داخبره بيان كړله.نو اوس كه موده كمه وي.اوكه زياته وي.چه څه هم معين كړې شي.اجاره به صحيح وي.

په ذخيره كتاب كي دي.كه د اجارې دومره موده ئې معين كړله.چه دغه وخته پورې به په دوی كي يو هم ژوندې پاتې نشي.نو اجاره به صحيح نه وي.د قاضي ابوعاصم عامری فتوی هم داده.ځكه چې د احكامو په حق كي د غالب حكم د يقين پشان دې.نو اجاره مؤبد شوه.او تابيد مبطل د اجارې وي.خود امام خصاف رحمه الله په نيز جائز ده.ځكه چې اعتبار د لفظ دې.او هغه د وخت تقاضه كوي. پاتې شوه د مودې نه وړاندې په دوی كې د يوكس ژوندی نه پاتې كيدل،نو ددې هيڅ اعتبار نشته.چه مستاجر د خپل ملك كيدلو دعوه اونكړي.،،هو المختار للفتوى ،، د بلخ مشائخو هم دا اختيار كړې ده.نورو مشائخو د دريو كالو نه زيات هم جائز ګرځولې ده.خو په دې صورت كي به حاكم ارخ ته مرافعه كول وي. چې هغه دا ماته كړي.د فقيه ابوالليث رحمه الله فتوی هم په دې ده.

## په نفس عقد سره منافع معلومول

قَالَ: (وَتَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً بِنَفْسِهِ و منافع كله كله په نفس عقد سره معلومېږي. كَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا عَلَى صَبْغِ ثَوْبِهِ لكه يوكس په اجرت باندې يو سړې ددې لپاره اونيولو.چه دده كپړه رنګ كړي. أَوْ خِيَاطَتِهِ يا ددې د ګنډلو دپاره. أَوِ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً يا ئې په كرايه باندې سوارلۍ واخستله. لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا مِقْدَارًا مَعْلُومًا چې بار كړي په دې باندې يو معلوم مقدار، أَوْ يَرْكَبَهَا مَسَافَةً سَمَّاهَا) يا سورشی په دې باندې يو معلوم مسافه پورې.كوم چې ده بيان كړو. لِأَنَّهُ إِذَا بَيَّنَ الثَّوْبَ وَلَوْنَ الصَّبْغِ وَقَدْرَهُ وَجِنْسَ الْخِيَاطَةِ وَالْقَدْرَ الْمَحْمُولَ وَجِنْسَهُ وَالْمَسَافَةَ ځكه كله چې دده كپړه،د



رنګ كاوه رنګ، ددې مقدار، د ګنډلو جنس،كوم شی به چې بار كوي د هغې مقدار، او جنس او مسافه بيان كړو. صَارَتِ الْمَنْفَعَةُ مَعْلُومَةً نو منفعت معلوم شو. فَيَصِحُّ الْعَقْدُ، نو عقد به صحيح وي.

**حل اللغة:** صبغ: رنګ كول، خياطه: ګنډل، لون: رنګ ، قصار: دهوبی ، خياط: درزي ، اجير وحيد: اجير خاص

**تشريح:** د منافع معلومولو دوېمې طريقه «قوله: معلومة بنفسه.....» عامو شارحينو ددې تفسير په نفس عقد الاجاره سره كړې دې.او ددې نسخې نه علاوه د بلې نسخې نشاندهې ئې نه ده كړې.البته صاحب د غاية البيان ذكركړي دی.چه په بعضو نسخو كي عبارت داسې دې. «و تارة تصير معلومة بالتسمية» او غالباً هم دا نسخه صحيح ده.ځكه چې لكه څنګه په ړومبی ډول او راتلونكی ډول كي منافع په نفس عقد سره نه معلومېږي.بلكه په ړومبی قسم كي د مودې بيانولو په ذريعه، او په راتلونكی ډول كي د تعيين او اشارې په ذريعه معلومېږي.دغه ډول په دې ډول كي هم په نفس عقد سره نه معلومېږي.بلكه د كومو خبرو بيانول چې ضروری وي.د هغې په بيانولو سره به معلومېږي.په دې وجه د مختصر القدوری نه علاوه په عامو معتبرو كتابونو كي لفظ،، بنفسه،، نه ښكاري.بلكه په بعضو كي لفظ،،بالتسميه،، ذكر دې لكه په كنز او مختار وغيره ذكر دې.او په بعضو كي ،بذكر العمل، ، ذكر دې.لكه څنګه چې په وقايه او بعضو متونو كي دی.اوس د قول مطلب دادې.چه د منافعو معلومولو دوېمه طريقه داده.

د منافعو معلومولو دوېمه طريقه هغه عمل بيان كړې شي.دځه لپاره چې اجاره مطلوب ده.لكه د كپړې رنګ كول،او وينځل،يا زرګری ، يا په څاروی سوريدل، يا بوج اوچتول، وغيره.چه په دې سره هم منفعت معلومېږي.په دې شرط چې دا خبرې په داسې طريقه بيان كړې شي.چه روسته جګړه پيدا نشي.مثلاً د رنګ كاوه كي كپړه، او ددې رنګ بيانول، چې سور مطلوب دی.اوكه زيړ پكار دې.دغه ډول په ګنډلو كي د ګنډلو ډول بيانول،،و على هذا القياس،،

وَرُبَّمَا يُقَالُ: اوكله داسې وئيلی شی. الْإِجَارَةُ قَدْ تَكُونُ عَقْدًا عَلَى الْعَمَلِ چې اجاره كله په عمل باندې عقد وي. كَاسْتِئْجَارِ الْقَصَّارِ وَالْخَيَّاطِ،لكه دهوبی يا درزي په اجاره باندې اخستل. وَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ الْعَمَلُ مَعْلُومًا په دې كي د كار معلوميدل ضروری دی. وَذَلِكَ فِي الْأَجِيرِ الْمُشْتَرَكِ، اودا په اجير مشترك كي كيږي.

**تشريح:** صاحب د كتاب د اجارې كوم ويش ذكر كړې دې.هغه درې قسمونه دي.او صاحب د اسرار قاضي ابوزيد، او صاحب د تحفه وغيره مشائخو دوې (دوه) قسمونه بيان كړي دي.او داسې ئې وئيلی دي.چه اجاره كله كله په عمل باندې واقع كيږي.لكه دهوبی يا درزي په اجاره باندې اخستل.په دې صورت كي د كار معلوميدل ضروری دی.اودا اجاره په اجير مشترك كي كيږي.او كله كله اجاره په منفعت باندې واقع كيږي.چه دا په اجير خاص كي كيږي.په دې كي وخت بيانول ضروری دی.

**اعتراض:** په دې ويش باندې اعتراض كيږي.چه د كتاب الاجاره په پيل كي دا خبره تيره شوې ده.چه عقد اجاره داده.چه د منافعو په عوض كي واقع كيږي.نو ددې ويش عقد علی العمل او عقد علی المنفعت ارخ ته څنګه صحيح كيدای شی ؟

**جواب:** دادې.چه ددې ويش عبارت د هيرې په وجه ليكلې شوې دې.او مراد دادې.چه اجاره كله كله د كار په نفع باندې واقع كيږي.او كله پخپله د څيزونو په نفع باندې كيږي.بيا د علامه مرغينانی رحمه الله دا ويش په نورو قسمونو كي ذكر كول هم د هيرې نه خالی نه دې.ددې حق خو دا وو.چه دا ئې د ړومبی ويش اقسام ثلاثه نه روسته ذكر كړې وو.لكه څنګه چې صاحب د كافی كړی دی.

وَقَدْ تَكُونُ عَقْدًا عَلَى الْمَنْفَعَةِ اوكله په منفعت باندې عقد وي. كَمَا فِي أَجِيرِ الْوَحْدِ،لكه څنګه چې اجير خاص كي كيږي. وَلَا بُدَّ مِنْ بَيَانِ الْوَقْتِ.دې كي وخت بيانول ضروری دی. قَالَ: (وَتَارَةً تَصِيرُ الْمَنْفَعَةُ مَعْلُومَةً بِالتَّعْيِينِ وَالْإِشَارَةِ او كله منفعت معلوميدل ضروری دي.په معين كاوه يا اشاره كاوه سره. كَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا، لكه يوكس يو

سړي په اجاره باندې واخستلو ﴿يَنْقُلُ لَهُ هٰذَا الطَّعَامَ إِلَىٰ مَوْضِعٍ مَّعْلُومٍ﴾ ، چې هغه دا غله يو معلوم ځاى ته يوسي. ﴿لِأَنَّهُ إِذَا أَرَاهُ مَا يَنْقُلُهُ﴾ ځكه هركله چې ده اوخودل هغه كوم چې منتقل كول دى. ﴿وَالْمَوْضِعَ الَّذِي يَحْمِلُ إِلَيْهِ﴾ او بيان ئې كړو هغه ځاى كوم ځاى ته چې رسول دى. ﴿كَانَتِ الْمَنْفَعَةُ مَعْلُومَةً﴾ نو منفعت معلوم شو. ﴿فَيَصِحُّ الْعَقْدُ﴾ نو عقد به صحيح وى.

**تشريح: قوله كما في اجير الوحد...** ﴾ په بعض نسخو كې د ،، اجيرالوحد ،، په ځاى ،، الاجيرالواحد ،، دى. خو روميې نسخه زياته صحيح ده. په لويديځ كې دى. چه اجيرالواحد اضافت سره دې. پخلاف د اجير المشترك ﴿ و حد بسكون حاء واحد﴾ په معنى د وحيد دې. ﴿ أي أجير المستاجر الواحد﴾ هم ددې معنى كې اجيرخاص دې. اوكه حاء متحرك اووئيلى شى. نودا هم صحيح ده. وئيلى شى. ﴿ رجل وحد أي منفر﴾ بيا صاحب دغايه رحمه الله په دې باندې اعتراض كړې

دې چه د اجيروحد (يعنى د اجيرخاص) اجاره هم عقد على العمل دې. عقد على المنفعت نه دې. صرف دومره خبره ده. چه په دې كې موده بيانول شرط دى. دغه ډول صاحب د تحفه دا د استيجار على الاعمال يو ډول ګرځولې دې. نو علامه مرغينانى رحمه الله له داسې وئيل پكار وو. ﴿ وقد تكون عقداً على المنفعة كاستئجار السدور و الحوانيت و نحوها﴾ خود موصوف دا اعتراض غلط دې. ځكه چې د اجير وحد اجاره عقد على العمل نه دې. په دې وجه اجير خاص د اجاره په موده كې پخپل ځان سپارلو سره د اجرت مستحق كيږى. اګرچه ده هيڅ كار نه وى كړې. كه دا عقد على العمل وې. نود عمل نه بغير به د اجرت نه مستحق كيدلو. ﴿ بل إنما هي عقد على منافع نفسه مطلقاً﴾ د منافع معلومولو دريمه طريقه ﴿ قوله: بالتعيين و الإشارة....﴾ د منافعو معلومولو دريمه طريقه داده. چه ددې تعيين يا دې اړخ ته اشاره اوكړې شي. چه دا شئ فلانى ځاى ته رسول دى. ځكه چې كله اجير دا شئ اوكتلو او ځاى ئې هم اوپيژندلو. نو منفعت معلوم شو. نو عقد به هم درست وى.

## بَابُ الْأَجْرِ مَتَىٰ يُسْتَحَقُّ

ژباړه: (دا) باب (په دې اړه كې) دې. (چه) د اجرت استحقاق كله كيږى ؟

**تشريح: قوله باب** صاحب د نهايه رحمه الله وغيره شارحينو راتلونكى مسائل د مستقل باب په عنوان سره د ذكر كاوه توجيه داسې كړې ده. چه وړاندې ئې دا بيان كړى وو. چه د اجارې صحت په اجرت معلومولو باندې موقوف دې. نو ددې د وجوب وخت بيانول هم ضرورى شو. خودا وجه ډيره خفيفه (او كمزورې) ده. ځكه چې صرف د اجارې صحت په اجرت معلوميدلو باندې موقوف كيدل، خو ددې تقاضه هم نه كوى. چه ددې وجوب بيان كړې شى. لا پاتې دا چې ددې د وجوب وخت په جلا باب كې ذكركړې شى. ځكه چې په ډيرو عقدونو كې د بدلينو معلوميدل ضرورى دى. ددې باوجود په يو كې هم د وجوب وخت په جلا باب كې د بيانولو حاجت راپيښ نشو. صاحب د عنايه رحمه الله ددې وجه دا بيان كړې ده. چه اجاره چونكه په دې خبره كې د نورو عقدونو نه مختلف ده. چه په نورو عقدونو كې د خيار شرط نه بغير عقد سره ملك نه مختلف كيږى. او په اجاره كې مختلف كيږى. نو وخت د تملك په جلا باب كې بيانول ضرورى شو. خودا وجه ځكه صحيح نه ده. چه عقد سره د ملك روسته ثابتيدل، په نورو عقدونو كې هم موجود دى. لكه هبه چې په دې كې نفس عقد سره ملك نه ثابتيږى. بلكه په قبضه باندې موقوف وى. دغه ډول وصيت دې. چه په دې كې ملك د فوت كيدلو وخته پورې مؤخر وى. نو بهتره توجيه د صاحب د نتائج رحمه الله ده. چه د اجرت د استحقاق وخت چونكه د شريعت د امامانو په منځ كې مختلف فيه دې. او دې سره ډير مسائل متعلق دى. نودا په جلا باب كې بيانول ډير ضرورى دى.

**په عقد اجاره سره د اجرت وجوب**

قال: ﴿الْأُجْرَةُ لَا تَجِبُ بِالْعَقْدِ﴾ اجرت نه واجبيږى په نفس عقد سره.



**تشريح:** په دې عبارت كې د اجرت د نفس وجوب نفى ده. يا د وجوب اداء نفى ده. په دې اړه كې د شارحينو اقوال مختلف دى. تاج الشريعة فرمائيلي دى. چه د وجوب اداء نفى مراد ده. يعنى د نفس عقد په ذريعه د اجرت ادائيګى نه واجبيږى. پاتې شوه د نفس اجرت وجوب، نودا په نفس عقد سره ثابتيږى. ددې په خلاف د صاحب د كفايه رحمه الله رائې داده. چه د نفس وجوب نفى مراد ده. د وجوب اداء نفى مراد نه ده. اودا ئې اجمال او تفصيل دواړو طريقو سره بيان كړې دې. اجمالاً ئې داسې بيان كړې دې. چه په اجرت كې كه يو غلام مقرر وى. او درې واړه خبرو كې د يوې خبرې موجود كيدلو نه وړاندې موجر دا غلام آزد كړى. نودا نه آزاديږى. كه د اجرت نفس وجوب ثابتيدلو. نود موجر آزادول به صحيح وو. لكه ځنګه چې د بيع په صورت كې كيږى. او تفصيلاً ئې داسې بيان كړې دې. چه اجاره يو عقد معاوضه ده. نو په دې كې به د دواړو اړخه د برابرئ اعتبار كولې شى. حالانكه د معقود عليه (يعنى د منفعت) د اړخه مساوات اونه مونډې شو. نه په نفس وجوب كې او نه په وجوب اداء كې. نو هم داسې به د عوض په اړخ كې هم نه مونډلې كيږى. صاحب د نهايه رحمه الله فرمانى. ﴿ الأجرة لا تجب بالعقد﴾ نه مراد دادې. چه د اجرت سپارل او اداء كول صرف په عقد سره نه واجبيږى. بيا د ذخيره (كتاب) دا مضمون ددې په حق كې تائيد خودلې شوې دې. چه

﴿ يجب أن يعلم أن الأجرة لا تملك بنفس العقد و لا يجب إيفاؤها إلا بعد إستيفاء المنفعة إذا لم يشترط التعجيل في الأجرة سواء كانت الأجرة عيناً أو ديناً هكذا ذكر محمد في الجامع و في كتاب التحرى و ذكر في الإجارات أن الأجرة إذا كانت عيناً لا تملك بنفس العقد و إن كانت ديناً تملك بنفس العقد و تكون بمنزلة الدين المعجل فعامة المشائخ على أن الصحيح ما ذكره في الجامع و كتاب التحرى و قال بعضهم ما ذكره في الإجارات قول محمد رحمه الله اولاً و ما ذكره في الجامع و التحرى قوله آخرا ،، إلى ههنا لفظ النهاية ،،﴾ يعنى دا معلومول ضرورى دى. چه اجرت په نفس عقد سره نه مملوك كيږى. او نه ددې پوره كول واجبيږى. خو پوره طور باندې د منفعت حاصلولو نه روسته واجبيږى. خو كله چې فوراً د اجرت اداء كاوه شرط نه وى لګولې شوې. كه اجرت عين وى. اوكه دين وى. امام محمد رحمه الله په جامع صغير، او كتاب التحرى كې هم داسې ذكر كړې دى. او په اجارات كې ئې ذكر كړې دى. چه اجرت كله عين وى. نو په نفس عقد سره نه مملوك كيږى. اوكه دين وى. نو په نفس عقد سره مملوك كيږى. اودا د دين معجل په درجه كې كيږى. نو عام مشائخ په دې دى. چه صحيح قول هغه دې. كوم چې په جامع صغير او كتاب التحرى كې ذكر دې. او بعض مشائخو فرمائيلي دى. چه كوم څه په اجارات كې ذكر دى. هغه دامام محمد رحمه الله رومبې قول دې. او كوم چې په جامع صغير او كتاب التحرى كې ذكردى. هغه ددوى آخرى قول دى.

[1] صاحب د عنايه رحمه الله د صاحب د نهايه رحمه الله قول ﴿ الأجرة لا تجب بالعقد معناه لا يجب تسليمها و أداؤها بمجرد العقد﴾ نقل كاوه نه روسته فرمائيلي دى. چه دا كلام واضح نه دې. ځكه چې د حواله كاوه نفى د تملك نفى ته لازم نه ده. لكه ځنګه چې مشترى په نفس عقد سره د مبيع مالك كيږى. خو ده ته حواله كول ضرورى نه وى. تر كومه پورې چې ثمن باندې قبضه اونكړې شى. نو صحيح داده. چه د ،، لا يجب ،، معنى ،، لا تملك ،، ده. ځكه چې امام محمد رحمه الله په جامع صغير كې وئيلي دى. ﴿ أن الأجرة لا تملك﴾ او كوم چې مملوك شوې نه وى. د هغې پوره كول نه واجبيږى.

[2] ددې نه روسته صاحب د عنايه رحمه الله فرمائيلي دى. كه څوك دا اعتراض اوكړى. چه كله نفى د وجوب، نفى د تملك ته مستلزم نشوه. نو دا زيات عام شو. او عام ذكر كول او خاص مراد اخستل. مجاز شائع (او مستعمل) نه دې. ځكه چې يو خاص شئ باندې زيات تر د عام دلالت نه كيږى ؟ ځواب دادې. چه كلام كې د غالب حالت بيان دې. او هغه داچه اجرت ثابت في الذمه ځنې وى. چه په دې كې نفى د وجوب بالضرور نفى د تملك ته مستلزم وى. صاحب د نتائج فرمانى. چه نه اعتراض څه شئ دې. اونه ځواب. اعتراض ځكه هيڅ شئ نه دې. چه عام ذكر كاوه سره خاص مراد اخستل مجاز شائع نه كيدل هغه وخت دى. كله چې يو خاص قرينه دلالت اونكړى. او په مانحن فيه كې د اخص مراد اخستلو باندې قرينه موجود ده. چه هغه د علامه مرغينانى رحمه الله قول ﴿ و قال الشافعي رحمه الله تملك بنفس العقد﴾ دې. كه اخص مراد نه

وي.نو محل خلاف متحد نشي كيدلي. لكه چې صاحب د عنايه رحمه الله پخپله هم ددې اعتراف كړې دې.او خواب په دې وجه هيڅ شی نه دې.چه د موصوف قول ﴿و هو يستلزم نفي التملك لا محالة﴾ به نه منلې كيږي.خكه چې عين واجب في الذمه ځنې نه دې.او ددې باوجود مملوك كيږي.

**په شرط تعجيل او تعجيل بغيرشرط.او په استيفاء د معقود عليه سره د اجرت د استحقاق حكم**

وَتُسْتَحَقُّ بِأَحَدِ مَعَانٍ ثَلَاثَةٍ: بلكه مستحق كيږي په دريو خبرو كي په يوې خبرې سره. إِمَّا بِشَرْطِ التَّعْجِيلِ، د پيشګۍ (فوراً) ور كاوه په شرط سره، أَوْ بِالتَّعْجِيلِ مِنْ غَيْرِ شَرْطٍ، يا د پيشګی ور كاوه د ش زرط نه بغير، أَوْ بِاسْتِيفَاءِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ يا د معقود عليه په حاصلولو سره.

**تشريح:** زمونږ او د امام مالك رحمه الله په نيز د نفس عقد په ذريعه د اجرت استحقاق نه كيږي.خكه چې حكم د عقد د منفعت د وجوب نه روسته ښكاره كيږي.او په اجاره كي د عقد كاوه په وخت منفعت نه موجود كيږي.نو په نفس عقد سره د اجرت مستحق كيدلو هيڅ معنى نشته.په دې وجه به اجرت امر آخر سره مقيد وي.اودا په يو څو خبرو كي يوه ده.

**مسلك احناف و مالكيه** رحمهم الله ① مستاجر پخپله اجرت پيشګی وركړي.نو اوس اجرت واجبيږي.مطلب دا چې مستاجر ئې واپس نشي اخستلې. ② د اجرت پيشګی (ايډوانس) اخستلو شرط وي.په دې سره هم د اجرت مستحق كيږي.خكه چې نفس عقد سره د اجرت مستحق كيدلو هيڅ مطلب نشته.په دې وجه به اجرت امر آخر سره مقيد كيږي.او هغه په يو څو خبرو كي يوه ده. ③ استيفاء د معقود عليه يعنى مستاجر پوره منفعت حاصل كړي.په دې صورت كي هم د اجرت استحقاق كيږي.خكه چې اجاره عقد معاوضه ده.او په دې دوارو كي چې كله برابرى ثابت شي.نو اجرت به واجبيږي. ④ مستاجر په پوره منفعت حاصلولو باندې قادر شي.خكه چې په يو شی باندې قبضه بعينه ددې شی قائم مقام جوړيږي.نو ګويا مستاجر پوره نفع حاصل كړله.بيا كه د مستاجر نه دا شی غصب كړې شو.نو اجرت به ساقطيږي.خكه چې مذكوره قبضه فوت شوه.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: او امام شافعي رحمه الله فرمايي تُمْلَكُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ؛ چې صرف عقد سره د اجرت مالك كيږي.لِأَنَّ الْمَنَافِعَ الْمَعْدُومَةَ صَارَتْ مَوْجُودَةً حُكْمًا ضَرُورَةَ تَصْحِيحِ الْعَقْدِ خكه چې معدوم منافع حكماً موجود شوې.د عقد د تصحيح په ارتيا سره. فَيَثْبُتُ الْحُكْمُ فِيمَا يُقَابِلُهُ مِنَ الْبَدَلِ. نو ددې مقابل عوض كي هم حكم ثابت شو.

**تشريح:** دامام شافعي او امام محمد رحمهما الله په نيز صرف عقد سره د اجرت ملكيت ثابتيږي.خكه چې معدوم منافع حكماً بالفعل موجود منلې شوي دي.چه اجاره صحيح شي.په دې وجه وجه اجاره په اجرت مؤجله سره صحيح كيږي.كه منافع معدومه موجود او نه منلې شي.نو تاخير سره اجرت ادا كاوه په صورت كي به پور د پور په بدله كي شي.چه دا حرام دي.او هركله چې دا حكماً بالفعل موجود شو.نود عقد په ذريعه د ملك ثبوت ضروري دې.خكه چې مقتضى موجود او مانع منتفي دې.نو ددې په مقابل چې كوم عوض يعنى اجرت دې. هغې كي به هم حكم ثابتيږي.په دې وجه د منفعت د استيفاء نه وړاندې د اجرت نه برى كول بالاجماع صحيح دي.

وَلَنَا زمونږ دليل دادې.أَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ شَيْئًا فَشَيْئًا عَلَى حَسَبِ حُدُوثِ الْمَنَافِعِ چې عقد اجاره منعقد كيږي.د لږ لږ منافع پيدا كيدلو موافق، عَلَى مَا بَيَّنَّا،لكه څنګه چې مونږ بيان كړي دي.وَالْعَقْدُ مُعَاوَضَةٌ،او اجاره يو عقد معاوضه ده.وَمِنْ قَضِيَّتِهَا الْمُسَاوَاةُ، چې ددې د حكم ځنې مساوات هم دې. فَمِنْ ضَرُورَةِ التَّرَاخِي فِي جَانِبِ الْمَنْفَعَةِ التَّرَاخِي فِي الْبَدَلِ الْآخَرِ.نود منفعت په اړخ كي تاخير كيدلو سره ضروري ده.په بل بدل كي تاخير كيدل، وَإِذَا اسْتَوْفَى الْمَنْفَعَةَ او كله ئې چې منفعت حاصل كړو.يَثْبُتُ الْمِلْكُ فِي الْأَجْرِ لِتَحَقُّقِ التَّسْوِيَةِ. نو په اجرت كي به هم ملك



ثابتيږي.د برابرئ ثابتولو دپاره.وَكَذَا إِذَا شَرَطَ التَّعْجِيلَ دغه ډول كله چې پيشګی اخستل شرط وي.أَوْ عَجَّلَ يا ئې بغير د شرط نه پيشګی اداء كړې وي.لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ تَثْبُتُ حَقًّا لَهُ وَقَدْ أَبْطَلَهُ خكه چې مساوات د حق مستاجر په وجه ثابتيدلو.كوم چې ده پخپله باطل كړو.

**تشريح:** زمونږ دليل دادې.چه عقد اجاره په لږه لږه د منافع د حدوث موافق منعقد كيږي.او اجاره يو عقد معاوضه ده.چه دا د دواړو اړخه د برابرئ تقاضه كوي.نود منفعت په اړخ كي تاخيركيدلو سره د اجرت په اړخ كي تاخير كول هم ضروري دي.او هركله چې منفعت حاصل كړې شو.نو په اجرت كي به هم ملك حاصليږي.چه د دواړو اړخه برابرى ثابت شي.كه د فورى (پيشګی) اجرت شرط ئې لګولې وي.يا ئې د شرط نه بغير حواله كړې وي.بيا به هم ملك حاصليږي.اګرچه اوس منافع نه وي حاصل كړې.خكه چې مساوات د حق مستاجر كيدلو په وجه ثابت شوې وو.كوم چې ده پخپله باطل كړو.

**د مستاجر په قبضې سره د اجرت حكم**

(وَإِذَا قَبَضَ الْمُسْتَأْجِرُ الدَّارَ) كله چې مستاجر په كور قبضه اوكړله (فَعَلَيْهِ الْأَجْرُ وَإِنْ لَمْ يَسْكُنْهَا) نو په ده باندې اجرت واجب دې.اګرچه په هغې كي نه اوسيږي.لِأَنَّ تَسْلِيمَ عَيْنِ الْمَنْفَعَةِ لَا يُتَصَوَّرُ خكه چې د عين منفعت سپارل متصور نه دي. فَأَقَمْنَا تَسْلِيمَ الْمَحَلِّ مَقَامَهُ نو مونږ كور حواله كول ددې قائم مقام كړل.إِذْ التَّمَكُّنُ مِنَ الِانْتِفَاعِ يَثْبُتُ بِهِ. خكه چې په دې سره انتفاع باندې قابو ثابتيږي.

**تشريح:** كله چې كرايه دار د كرايه په كور باندې قبضه اوكړله.نو په ده باندې اجرت واجب شو.اګرچه هغه په دې كي رهائش اختيار نكړي.خكه چې دعين منفعت سپارل غير متصور دي.نو د منفعت محل (يعنى د كرايه كور) سپارل د منفعت سپارلو قائم مقام كړې شو.خكه چې د منفعت محل سپارلو سره د منفعت حاصلولو قابو ثابتيږي.نو كور سپارل ګويا منفعت سپارل شو.

**فائده:** صاحب د نهايه رحمه الله وغيره ذكر كړي دي.چه دا مسئله په يو څو قيوداتو سره مقيد ده. ① په منفعت حاصلولو باندې قابض وي.كه په دې باندې قابض نه وي.په دې طريقه چې مالك يا بل څوك اجنبي دې منع كړو.يا مالك كور په داسې حال كي اوسپارلو.چه هغه ددې په اسبابو كي بوخت دې.نو اجرت به نه واجبيږي. ② اجاره صحيحه وي.خكه چې په اجاره فاسد كي د اجرت د وجوب لپاره حقيقت د استيفاء شرط دې.صرف په موده كي د استيفاء په قابو سره اجرت نه واجبيږي.لكه چې په تتمه فتاوى كي دي. ﴿لا يجب الأجرة في الإجارة الفاسدة بالتمكن من إستيفاء المنفعة و إنما تجب بحقيقة الإستيفاء﴾ ③ په ذخيره او شرح اقطع كي دي.چه د مستاجر د اړخه قبضه هغه ځائې كي وي.د كوم په حق كي چې عقد واقع شوې وي.ترڅو كه د كوفه پورې ئې سوارلۍ په اجاره واخستله.او مساجر په دې باندې قبضه اوكړله. او په بغداد كي ئې اوساتله.ترڅو چې دومره موده تيره شوه.چه په دې كي كوفې ته رسيدلې شي.نو اجرت به نه واجبيږي.او كه دا ئې خپل ځان سره كوفې ته بوتلله.او په دې باندې سور نشو.نو اجرت به واجب وي.(د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز به دواړو صورتونو كي اجرت واجب وي). ④ د مفعت په استيفاء باندې د اجارۀ په موده كي قابض كيدل.كه د نن ورځ كوفې تللو لپاره ئې سوارلۍ په اجرت باندې واخستله.او د نن ورځې تيريدلو نه روسته ئې سوارلۍ واخستله.او كوفې ته لاړو.او سور نشو.نو اجرت به واجب نه وي.

**سوال:** هركله چې مسئله قيودات اربعه سره مقيد ده.نو بيا د علامه مرغيناني رحمه الله كلام ددې نه ساكت ولې دې؟

**جواب:** دادې.چه دا د لالت حال او عرف باندې د اعتماد كاوه په وجه دي.

قَالَ: (فَإِنْ غَصَبَهَا غَاصِبٌ مِنْ يَدِهِ) بياكه دا مستاجر نه يو غاصب غصب كړلو. (سَقَطَتِ الْأُجْرَةُ) نو اجرت به ساقطيږي. لِأَنَّ تَسْلِيمَ الْمَحَلِّ إِنَّمَا أُقِيمَ مَقَامَ تَسْلِيمِ الْمَنْفَعَةِ لِلتَّمَكُّنِ مِنَ الِانْتِفَاعِ، خكه چې كور حواله كول د منفعت

سپارلو قائم مقام جوړشوي وو. انتفاع باندې د قابو موندلو په وجه. فَإِذَا فَاتَ التَّمَكُّنُ نو هرکله چې قابو فوت شو. فَاتَ التَّسْلِيمُ نو تسليم هم فوت شو. وَانْفَسَخَ الْعَقْدُ او عقد فسخ شو. فَسَقَطَ الْأَجْرُ نو اجرت به هم ساقطيږي. وَإِنْ وُجِدَ الْغَصْبُ فِي بَعْضِ الْمُدَّةِ او كه په بعض موده كې غصب اوموندې شو. سَقَطَ الْأَجْرُ بِقَدْرِهِ. نو هم ددې په اندازه به اجرت ساقطيږي. إِذِ الْإِنْفِسَاخُ فِي بَعْضِهَا. ځكه چې د عقد فسخ كول په بعض موده كې دى.

**تشريح:** كوم صورت چې ذكر شوې دې. كه په دې كې عين مستاجره دمستاجر نه يو غاصب غصب كړو. نود مستاجر د ذمې څخه به اجرت ساقطيږي. ځكه چې د كرايه والا شئ حواله كول. د نفع حواله كاوه قائم مقام ځكه ګرځولى شوى دى. چه ده په نفع باندې قبضه حاصل وى. هركله چې دا ختم شو. نو سپارل هم ختم شو. او عقد فسخ شو. نو اجرت به هم ساقطيږي. اوكه د اجارې په يوه موده كې يو جزء غصب كړې شو. نو د څومره مودې پورې چې غصب اوموندې شو. هم په دغه اندازه به اجرت هم ساقطيږي. ځكه چې د عقد فسخ كيدل ددې مودې په بعض جزء كې دى.

**قَالَ:** (وَمَنْ اسْتَأْجَرَ دَارًا) چا چې يو كور په كرايه واخستلو. (فَلِلْمُؤَجِّرِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِأُجْرَةِ كُلِّ يَوْمٍ) نو موجر ته به هره ورځ د اجرت د مطالبې اختيار وى. لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنْفَعَةً مَقْصُودَةً ځكه چې مستاجر منفعت مقصوده حاصل كړو. (إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ وَقْتَ الْاِسْتِحْقَاقِ بِالْعَقْدِ) خودا چې په عقد كې ئې د استحقاق وخت بيان كړې وى. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ التَّأْجِيلِ ځكه چې دا په منزله د ميعاد (نيټې) ور كاوه دى. (وَكَذٰلِكَ إِجَارَةُ الْأَرَاضِي) لِمَا بَيَّنَّا دغه ډول په زمكو كې اجاره هم په هغه وجه كومه چې موږ بيان كړې ده.

**تشريح:** كه په عقد اجاره كې د تعجيل يا تاخير قيد نه وى. نو موجر روزانه د كور او زمكې د كرايه مطالبه كولې شى. دغه ډول د اوښ والا هر مرحله باندې د اجرت د مطالبې حقدار دې. ځكه چې د هرې ورځې اوسيدل او د هر منزل مسافه پوره كول مقصود كې داخل دى. او مستاجر دومره منفعت حاصل كړو. البته كه مستاجر په عقد اجاره كې د استحقاق څه وخت بيان كړې وى. نو مطالبه به هم په دغه وخت باندې كولې شى. لكه څنګه چې قرضه كې د فى الحال مطالبې اختيار وى. خو كه قرضخواه مهلت وركړى. نود مقرره وخت نه وړاندې د مطالبې اختيار نه وى. دغه ډول دلته كې هم دى.

### د كرايې د اوښ د هر مرحلې د كرايه د مطالبې حكم

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَ بَعِيرًا إِلَى مَكَّةَ) چاچه په كرايه باندې اوښ واخستلو. مكې پورې. (فَلِلْجَمَّالِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِأُجْرَةِ كُلِّ مَرْحَلَةٍ) نو اوښ والا د هرمنزل كرايه طلب كولې شى. لِأَنَّ سَيْرَ كُلِّ مَرْحَلَةٍ مَقْصُودٌ ځكه چې د هر منزل رفتار مقصود دې.

**تشريح:** د ترجمې نه مطلب واضح دې

وَكَانَ أَبُوحَنِيفَةَ يَقُولُ أَوَّلًا: او امام ابوحنيفه رحمه الله به وړاندې فرمائيل. لَا يَجِبُ الْأَجْرُ إِلَّا بَعْدَ انْقِضَاءِ الْمُدَّةِ وَانْتِهَاءِ السَّفَرِ چې اجرت به نه واجبيږي. خود مودې او سفر پوره كاوه نه پس. وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او هم دا د امام زفر رحمه الله قول دې. لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ جُمْلَةُ الْمَنَافِعِ فِي الْمُدَّةِ ځكه چې معقود عليه ددې مودې پوره منافع دى. فَلَا يَتَوَزَّعُ الْأَجْرُ عَلَى أَجْزَائِهَا او اجرت به ددې په اجزاء باندې نه منقسم كيږي. كَمَا إِذَا كَانَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ الْعَمَلَ. لكه كه معقود عليه د يو سړي كار وى.

**تشريح:** امام ابوحنيفه رحمه الله مخكې ددې قائل وو. چه د مودې ختميدلو نه وړاندې، او د سفر ختميدلو نه وړاندې د مطالبې حق نشته. امام زفر رحمه الله هم ددې قائل دې. ځكه چې معقود عليه ددې مودې پوره منافع دى. نو د اجرت ويش به ددې په اجزاؤ نه كيږي. نود هر مرحله په مقابله كې به د اجرت استحقاق نه كيږي. لكه مثلاً كه معقود عليه د يو سړي كار وى. نود كار پوره كاوه نه وړاندې هغه د اجرت نه مستحق



كيږي. مثلاً يو درزى ئې د كوټ ګنډلو لپاره اجاره باندې اونيولو. نو دا نشى كيدې چه د كوټ يوه برخه ګنډلو سره درزى د خپل اجرت مطالبه اوكړى.

وَوَجْهُ الْقَوْلِ الْمَرْجُوعِ إِلَيْهِ د مرجوع اليه قول وجه داده. أَنَّ الْقِيَاسَ يَقْتَضِي اسْتِحْقَاقَ الْأَجْرِ سَاعَةً فَسَاعَةً چې قياس د اجرت استحقاق دې. وخت سره سره. لِتَحَقُّقِ الْمُسَاوَاةِ. چې برابرى ثابت وى. إِلَّا أَنَّ الْمُطَالَبَةَ فِي كُلِّ سَاعَةٍ تُفْضِي إِلَى أَنْ لَا يَتَفَرَّغَ لِغَيْرِهِ خود هر ساعت مطالبه به ددې تقاضه كوى. چه مستاجر د هيڅ كار لپاره فارغ نه وى. فَيَتَضَرَّرُ بِهِ. نو هغه به په دې سره نقصان نه اوچتوى. فَقَدَّرْنَا بِمَا ذَكَرْنَا نو موږ ددې اندازه په ذكر شوى مقدار سره اوكړو.

**تشريح:** د مرجوع اليه قول وجه داده. چه هركله مستاجر منفعت اوسپارلو. نو ددې په مقابله كې د اجرت استحقاق اوشو. اود نفع سپارل، وخت سره سره كيږي. چه ددې په مقابله كې د لږ لږ اجرت استحقاق كيږي. نو قياس خو ددې تقاضه كوى. چه ساعت په ساعت په لږه لږه د اجرت مطالبه اوكړى. خو هر ساعت مطالبه كاوه سره دا نوبت رسيږي. چه مستاجر به د بل څه كار لپاره نه فارغيږي. او هر ساعت به د موجر مطالبه پوره كوى. او ښكاره ده. چه په دې كې سخت حرج دې. په دې وجه موږ اونيول. چه يو منزل پوره كاوه سره د اجرت مطالبه كولې شى.

**قَالَ:** (وَلَيْسَ لِلْقَصَّارِ وَالْخَيَّاطِ أَنْ يُطَالِبَ بِأُجْرَةٍ) او د دهوبى او درزى لپاره د اجرت د مطالبې حق نه وى. (حَتّٰى يَفْرُغَ مِنَ الْعَمَلِ) ترڅو چې فارغ شى د كار نه. لِأَنَّ الْعَمَلَ فِي الْبَعْضِ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهِ ځكه چې په بعض ټكړې كې ئې چې كوم كار اوكړو. هغه د انتفاع قابل نه ده. فَلَا يَسْتَوْجِبُ بِهِ الْأَجْرَ نو ددې په وجه د اجرت مستحق نه وى.

**تشريح:** دهوبى او درزى به د اجرت مطالبه هغه وخت كوى. كله چې هغه د عمل نه فارغ شى. يعنى دهوبى كپړه اووينځى. او درزى كپړه وركړى. دا نشى كيدې. چه مثلاً د كوټ يو لستونړې اوګنډى. او درزى د اجرت مطالبه اوكړى. ځكه چې كوټ كې خالى د لمنې ګنډل ګټور نه دى.

وَكَذَا إِذَا عَمِلَ فِي بَيْتِ الْمُسْتَأْجِرِ دغه ډول كه د مستاجر په كور كې كيناستلو. او كار ئې اوكړو لَا يَسْتَوْجِبُ الْأَجْرَ قَبْلَ الْفَرَاغِ لِمَا بَيَّنَّا. بيا به هم د فراغت نه وړاندې د اجرت مستحق نه وى. په هغه وجه كومه چې موږ بيان كړله. **قَالَ:** (إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ التَّعْجِيلَ) لِمَا مَرَّ خودا چې وړاندې ئې شرط لګولې وى. ځكه تير شوى دى. أَنَّ الشَّرْطَ فِيهِ لَازِمٌ چې په دې كې كوم شرط وى. هغه لازم وى.

**تشريح:** دغه ډول كه درزى يا دهوبى د مستاجر په كور كې كيناستلو. او كار ئې اوكړو. بيا هم د فراغت نه وړاندې هغه د اجرت نه مستحق كيږي. د مذكوره دليل په وجه. چه په بعض جزء كې عمل كيدل غيرمفيد دى. د مستاجر په كور كې د كيناستلو او د كار كاوه بيان ځكه دې. چه هركله دده په كور كې كيناستلو. او كار ئې اوكړو. نودا كار پيوسته مستاجر ته سپارلې كيدلو. نو احتمال وو. چه هركله مستاجر ته كار اوسپارلې شو. نو اجير ددې د اجرت مستحق شو. خو هغه د اجرت مطالبه ځكه نشى كولې. چه لا تر اوسه دده عمل د څه فائدې ور كاوه نه دې. كله چې پوره نشى.

**تنبيه** ۞ په نهايه او كفايه وغيره كې دى. چه مذكوره حكم (د كار نه د فارغ كيدلو نه وړاندې به د اجرت نه مستحق كيږي). د عامو رواياتو كتابونه مبسوط، ذخيره، مغنى، فخرالاسلام، قاضى خان، او د تمرتاشى شرح، د جامع صغير، او فوائد ظهيريه خلاف دى. لكه په مبسوط كې دى. «ولو إستاجر خياطاً يخيط له في بيت المستاجر قميصاً و خاط بعضه فسرق الثوب فله الأجر بقدر ما خاط فإن كل جزء من العمل يصير مسلماً إلى صاحب الثوب بالفراغ و لا يتوقف التسليم في ذالك الجزء على حصول كمال المقصود»، كه يوكس درزى ددې كار لپاره په اجرت باندې اونيولو. چه هغه به د مستاجر په كور كې كميص ګنډى. نو هغه لږ كميص ګنډلې وو. چه كپړه غلا (پټه) شوه. نو ده چې څومره كميص ګنډلې وو. د هغې د اجرت به مستحق وى. ځكه چې د هر جزء نه په فراغت

باندې کار د کېږي مالك ته اوسپارلي شو.او ددې جزء کار سپارل، په پوره مقصود حاصلیدلو باندې موقوف نه دی ،،دغه ډول په قاضي خان کې دی. «ولهذا لو إستاجر خياطاً ليخيط له في منزله كلما عمل عملاً يستحق الأجرة بقدره» او د ذخیره په فصل ثاني کې دی. «و في الإجارة التي تنعقد على العمل و بقي له أثر في العين لا يجب أيضاً الأجر إلا بعد إيفاء العمل كله إلا أن يكون العمل للخياط و الصباغ في بيت صاحب المال يكون الجواب فيه كالجواب في الجمال على قوله الأخير يجب على المؤاجر إيفاء الأجر بقدر ما استوفى من المنفعة....» خو په تجريد کې ددې مسئلې حکم داسې ذکر دی لکه څنګه چې دلته په کتاب کې ذکر دی.نو ممکن ده.چه علامه مرغیناني رحمه الله په دې حکم کې د صاحب تجريد ابوالفضل کرماني رحمه الله اتباع کړې وی.نن سهار د فتوی زیات موافق هم داحکم دی.

**نان بائی د اجرت کله مستحق کیږي؟**

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ خَبَّازًا) چا چې په اجرت باندې نان بائی واخستلو. لِيَخْبِزَ لَهُ فِي بَيْتِهِ قَفِيزًا مِنْ دَقِيقٍ بِدِرْهَمٍ چې هغه ده لپاره ده په کور کې ډوډئ پخې کړي.د یو قفیز اوړو نه په یو درهم باندې، لَمْ يَسْتَحِقَّ الْأَجْرَ نو هغه به د اجرت نه مستحق کیږي. حَتّٰى يُخْرِجَ الْخُبْزَ مِنَ التَّنُّورِ ترڅو چې راوباسی ډوډئ د تنور نه. لِأَنَّ تَمَامَ الْعَمَلِ بِالْإِخْرَاجِ. ځکه چې کار پوره کول به راوبښکلو سره کیږي. فَلَوِ احْتَرَقَ نو که ډوډئ اوسوزیدلې. أَوْ سَقَطَ مِنْ يَدِهِ قَبْلَ الْإِخْرَاجِ یا ده د لاسه پریوتلې.د راوبښکلو نه وړاندې. فَلَا أَجْرَ لَهُ لِلْهَلَاكِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ، نو ده لپاره به هیڅ اجرت نه وی.د سپارلو نه وړاندې.د هلاکیدلو په وجه.

**حل اللغة:خباز:** نان بائی ، **خبز**(ض) **خبزاً**: ډوډئ پخول، **قفیز**: د( ناپ تول د) یوې پیمانې نوم دی، **دقیق**:اوړه، **احترق احتراقاً**: سوزیدل، **سلماً**: د تسلیم نه اسم فاعل دی.**جناية**: قصور، جرم.

**تشریح:** ددې قول مقصد دا بیانول دی.چه د عمل نه فراغت د کوم امر په ذریعه کیږي.مسئله داده.چه یو سړی د روټو پخولو والا ددې لپاره اجیر کړو.چه هغه زما په کور کې کیني.او یو قفیز اوړه د یو درهم په عوض پاخه کړي.نو په خالی تنور کې ډوډئ لګولو سره د اجیر کار نه پوره کیږي.بلکه کله چې ډوډئ اولګوی.اود تنور نه ئې راوباسی.بیا به کار پوره کیږي.او اوس به هغه د اجرت مستحق وی.دا هغه وخت دی.کله چې ډوډئ صحیح سلامت د تنور نه راوباسی.او که هغه تنور کې اوسوزیدلې.یا د راوبښکلو نه وړاندې د هغه د لاسه په اور کې پریوتلې.نو هغه لپاره به هیڅ اجرت نه وی.ځکه چې سپارلو نه وړاندې د هلاکیدلو په وجه ده د عمل ضائع شو.مبسوط کې دی.چه د روټو پخولو والا به ددې مال هم ضامن وی.ځکه چې دا جرم ده کار نه شوې دی.

(فَإِنْ أَخْرَجَهُ) او که ده ډوډئ راوبښکلې. ثُمَّ احْتَرَقَ مِنْ غَيْرِ فِعْلِهِ بیا هغه ده د فعل نه بغیر اوسوزیدلې. فَلَهُ الْأَجْرُ نو ده لپاره به اجرت وی. لِأَنَّهُ صَارَ مُسَلِّمًا إِلَيْهِ بِالْوَضْعِ فِي بَيْتِهِ،ځکه چې هغه سپارلو والا شو.ده په کور کې د جوړولو په وجه. وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ او په ده باندې څه تاوان هم نشته. لِأَنَّهُ لَمْ تُوجَدْ مِنْهُ الْجِنَايَةُ. ځکه چې ده د اړخه هیڅ جرم او نه موندې شو.

**تشریح:** اوکه هغه د تنور نه ډوډئ راوبښکلې.بیا ده د فعل نه بغیر په څه طریقه ډوډئ اوسوزیدلې.نو هغه به د خپل اجرت مستحق وی.ځکه چې هرکله ده دا کار د مستاجر په کور کې کړې دی.نو کار مستاجر ته اوسپارلې شو.ځکه موږ خودلی دی.چه کار کله د مستاجر په کور کې وی.نو څومره چې پوره کیږي.هغه مستاجر ته سپارلې کیږي.نو په دې صورت کې نان بائی باندې څه تاوان هم نه لازمیږي.ځکه چې ده د اړخه هیڅ جرم اونه موندې شو.ځکه چې ډوډئ ده د فعل نه بغیر هلاك شوې دی.



قَالَ:علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ،(1) چې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی. لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ،ځکه چې ډوډئ ده په قبضه کې امانت دی. وَعِنْدَهُمَا يَضْمَنُ مِثْلَ دَقِيقِهِ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز مالك به د خپلو اوړو په مثل تاوان اخلی. وَلَا أَجْرَ لَهُ او د نان بائی لپاره به هیڅ اجرت نه وی. لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځکه چې دا دهغه ذمه داری ده. فَلَا يَبْرَأُ إِلَّا بَعْدَ حَقِيقَةِ التَّسْلِيمِ،نو هغه به نه بری کیږي.خود حقیقي سپارلو نه پس. وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ الْخُبْزَ او که غواړي.د روټو تاوان دې واخلی. وَأَعْطَاهُ الْأَجْرَ او نان بائی ته دې د پخولو اجرت ورکړي.

**تشریح:** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائی.چه د اجرت د استحقاق اود ضمان نه کیدلو حکم د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.ځکه چې دا ډوډئ ده په قبضه کې امانت دی.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز مالك به د خپلو اوړو په مثل تاوان اخلی.او نان بائی ته به اجرت نه ملاویږي.وجه داده.چه کوم وخت مستاجر ده ته اوړه اوسپارل.نو هغه ده په ضمانت کې راغلل.ځکه چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز داسې اجیر هم ضامن کیږي.نو هغه به ددې ضمان نه هغه وخت بری کیږي.کله چې ډوډئ پخې کړي.او مستاجر ته ئې حقیقتاً اوسپاري.صرف په کور کې د کار کاوه په وجه د تاوان نه نه بری کیږي.حالانکه دلته کې دا ډوډئ د راوبښکلو نه روسته هلاك شوې دی.نو سپارل اونه موندې شو.نو مستاجر ته به د خپلو اوړو په مثل د تاوان اخستلو اختیار وی.

**بټیاره د اجرت کله مستحق کیږي؟**

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ طَبَّاخًا لِيَطْبُخَ لَهُ طَعَامًا لِلْوَلِيمَةِ) وچا چې په اجرت باندې یو بټیاره د ولیمې پخولو لپاره واخستلو. فَالْغَرْفُ عَلَيْهِ) اعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ. نو په لوخی کې اچول د هغه په ذمه دی.په عرف اعتبار کاوه سره.

**حل اللغة:طباخ**: پخونکې،باورچی ، **یطبخ** (ف،ن) **طبخاً**: پخول، **طعام**: خوراك، **ولیمة**: د واده روټئ، **عرف**: په لوخو کې راویستل، **لبن**: کچه خښتې، **یشرجها تشریجاً**: لاندې باندې یو بل د پاسه ایخودل،( پرئ کول)، **طین**: خټه،

**تشریح:** یو کس باورچی ددې لپاره په اجاره باندې واخستلو.چه هغه د ولیمې خوراك پوخ کړي.نود کټوئ نه سالن( ترکاری ) او د دیګ نه پلاؤ وغیره راوبښکل، پیالئ او تهالونه ډکول، د باورچی په ذمه واجب دی.ځکه چې عرف هم په دې جاری دی.او کوم شئ چې معروف وی.هغه په منزله د مشروط وی.نو ګویا باورچی سره دا شرط لګولې شوې وو.چه هغه به پخوی.او په لوخو کې به ئې راوباسی.البته که خوراك خاص وی.مثلاً یو خاص دیګ ئې پخ کړې وی.نود راوبښکلو ذمه داری به باورچی باندې نه وی.په ایضاح، محیط، او مغنی کې هم داسې دی.

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ إِنْسَانًا لِيَضْرِبَ لَهُ لَبِنًا) او چا چې په اجرت باندې واخستلو یو سړی د خښتو جوړولو دپاره، اسْتَحَقَّ الْأَجْرَ نود اجرت مستحق به وی. إِذَا أَقَامَهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، کله چې دا اودروی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز.

**تشریح:** یو سړی د خښتو جوړولو والا د خښتو جوړولو لپاره په مزدورئ اونیولو.نود امام ابوحنیفه او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز چې کله د خښتو جوړونکئ خښتې اوباسی.او ویدروی.نو هغه د اجرت مستحق کیږي.د اودرولو نه مراد دادې.چه په سوانچه سره د جوړولو نه روسته اوچولو لپاره اودروی.( مضمرات).

(1) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في القدوى (٩٣) وملتقى الأبحر(٥١٧\٣) وكنز الدقائق (٣١٣) والمبسوط للسرخسي رحمه الله (٦٩٤\٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٤\٢)

وَقَالَا: د صاحبين رحمهما الله فرماني **لَا يَسْتَحِقُّهَا** چې د اجرت به نه مستحق كيږي. **حَتَّى يُخْرِجَهَا** ()تردې چې ډوډۍ پرې اودروي. لِأَنَّ التَّسْلِيمَ مِنْ تَمَامِ عَمَلِهِ، ځكه چې لاندې باندې ايخودل دده د كار تتمه ده. إِذْ لَا يُؤْمَنُ مِنَ الْفَسَادِ قَبْلَهُ ځكه چې ډوډۍ نه وړاندې د خرابيدلو نه اطمينان نشته. فَصَارَ كَإِخْرَاجِ الْخُبْزِ مِنَ التَّنُّورِ نو د تنور نه د ډوډۍ راوښكلو پشان شو. وَلِأَنَّ الْأَجِيرَ هُوَ الَّذِي يَتَوَلَّاهُ عُرْفًا ځكه چې په عرف كې دا كار اجير كوي. وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِيمَا لَمْ يُنَصَّ عَلَيْهِ. او په كومو ځيزونو كې چې صراحت نه وي، هغې كې عرف معتبر وي.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله په نيز په ښښتو اوځكونكى باندې لاندې باندې د يو بل د پاسه پرې كول هم ضروري دي، چه دا دده د كار تتمه ده. ځكه چې ډوډۍ نه وړاندې ددې د خرابيدلو خطره وي. نو دا د تنور نه د ډوډۍ اوښكلو پشان شو، چه ددې نه بغير اجير د اجرت نه مستحق كيږي. ځكه دا خطره ده. چه ډوډۍ په تنور كې اوسوزي. ددې نه علاوه عرف هم دادې چه د ښښتو پرې كاوه كار هم مزدور كوي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. **أَنَّ الْعَمَلَ قَدْ تَمَّ بِالْإِقَامَةِ**، چې كار خو په اودرولو سره پوره شوې دې. وَالتَّشْرِيجُ عَمَلٌ زَائِدٌ او لاندې باندې ايخودل يو زياتى كار دې. **كَالنَّقْلِ**، لكه ددې منتقل كول. **أَلَا تَرَى** آيا نه گورې **أَنَّهُ يُنْتَفَعُ بِهِ قَبْلَ التَّشْرِيجِ بِالنَّقْلِ إِلَى مَوْضِعِ الْعَمَلِ**، چې د لاندې باندې ايخودلو (يعنى پرې كولو) نه وړاندې ددې نه نفع اخستل ممكن ده. د تعمير ځائې ته منتقل كاوه سره. **بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْإِقَامَةِ** په خلاف د اودرولو نه د وړاندې، **لِأَنَّهُ طِينٌ مُنْتَشِرٌ**، چې هغه وخته پورې دا د خورې ورې لوندې ختې پشان ده. **وَبِخِلَافِ الْخُبْزِ لِأَنَّهُ غَيْرُ مُنْتَفَعٍ بِهِ قَبْلَ الْإِخْرَاجِ** او په خلاف د ډوډۍ چې دا د تنور نه د راوښكلو نه وړاندې دنفع قابل نه دى.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې، چه د ښښتو سوانچه كاوه او اودرولو سره كار پوره شو. او لاندې باندې پرې كول دا يو زياتى كار دې. لكه چې د سوانچه كاوه د ځائې نه د كوره پورې منتقل كول، چې دا د اجير په ذمه نه دى. وجه داده. چه د يو بل د پاسه ايخودلو (او پرې كولو) نه وړاندې ددې ښښتو نه نفع اخستل ممكن ده. په دې طريقه چې كوم ځائې كې كور وغيره جوړيږي، هلته كې ئې يوسى. په خلاف د اودرولو نه وړاندې، ځكه چې د اودرولو نه وړاندې دا د خورې ورې لوندې ختې پشان ده. چه ددې نه نفع اخستل ناممكن ده. نو ددې اودرول ضروري دى. او په خلاف د روټئ، چې دا د تنور نه راوښكلو نه وړاندې د نفع قابل نه ده. په دې وجه ډوډۍ د تنور نه راوښكل د نان بائى په ذمه واجب دى. چه په دې باندې ښښتې نشى قياس كولې. ځكه چې دا د يو بل د پاسه ايخودلو نه وړاندې هم د نفع اخستلو قابل دى.

**تنبيه**® علامه مرغينانى رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله د دوهم دليل ځواب نه دې وركړې. (چې په عرف كې پرې كول د اجير په ذمه دى) په دې اړه كې ښكاره داده چه كوم ځائې كې عرف داوى. چه ښښتې لاندې باندې يو بل د پاسه د ايخودلو كار هم مزدور كوي. نو هلته كې هغه د ښښتو پرې كاوه نه روسته د اجرت مستحق كيږي. ځكه چې معروف په منزله د مشروط وي. او كوم ځائې چې دا عرف نه وي. هلته كې ښښتې اودرولو سره اجير د اجرت مستحق كيږي.

## كاريګر كوم ځيز د اجرت لپاره منع كولاې شي؟

قَالَ: (**وَكُلُّ صَانِعٍ لِعَمَلِهِ أَثَرٌ فِي الْعَيْنِ**) هر هغه كاريګر چې د هغه دفعل اثر په شي كې ښكاره وى **كَالْقَصَّارِ وَالصَّبَّاغِ فَلَهُ أَنْ يَحْبِسَ الْعَيْنَ** لكه دهوبى او كپړه رنګ كونكې عين شي د خپل كار نه د فراغت نه روسته منع كولې شى **حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْأَجْرَ** تردې چې واخلى پوره اجرت. **لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ وَصْفٌ قَائِمٌ فِي الثَّوْبِ** ځكه چې

(1) القول الراجح هو قول الصاحبين كذا بدائع الصنائع (٢٠٥\٤) والزيلعى (١١٠\٥) والهندية (٤٣١\٤) نقلاً عن القول [illegible] (٢٢٥\٢)



معقود عليه يو وصف دې. كوم چې په كپړه كې قائم دې. **فَلَهُ حَقُّ الْحَبْسِ لِاسْتِيفَاءِ الْبَدَلِ** نو هغه ته د منع كاوه حق شته. د عوض وصولولو دپاره، **كَمَا فِي الْمَبِيعِ**، لكه څنګه چې بيع كې حكم دې.

**تشريح:** د كوم اجير دكار اثر چې په عين شي كې موجود وى. لكه د كپړې رنګ كونكې، او دهوبى وغيره. داسې اجير د مزدورۍ وصولولو لپاره شي منع كولې شى. ځكه معقود عليه هغه وصف دې، كوم چې كپړه كې قائم دې. نو اجير د خپل كار بدله حاصلولو لپاره د منع كاوه حقدار دې. لكه څنګه چې مبيع كې حكم دې. چه كوم ثمن نقد مقرر كړې شوې دې. د هغې وصولولو پورې بائع دا منع كولې شى. په يوه وجه كې امام شافعى رحمه الله هم ددې قائل دې. (امام زفر، امام احمد رحمهما الله او په يو قول كې د امام شافعى رحمه الله په نيز ددې اختيار نشته)

وَلَوْ حَبَسَهُ كه ايسار ئې كړو **فَضَاعَ** او دهغه په قبضه كې ضائع شو. **لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ**، ()نو په هغه باندې تاوان نشته. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. **لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِي الْحَبْسِ** ځكه چې هغه منع كاوه كې زياتې كونكې نه دې. **فَبَقِيَ أَمَانَةً** نو مال امانت شو. **كَمَا كَانَ عِنْدَهُ**، لكه څنګه چې وړاندې وو. **وَلَا أَجْرَ لَهُ لِهَلَاكِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ قَبْلَ التَّسْلِيمِ**. او دده لپاره اجرت نشته. د سپارلو نه وړاندې، د معقود عليه هلاكيدلو په وجه.

**تشريح:** كه د منع كاوه نه روسته دا شي هلاك شي. نو د امام صاحب د مسلك په نيز مزدور باندې به تاوان نه وى. ځكه چې دده د اړخه هيڅ زياتې نه دې موندلې شوې. نو لكه څنګه چې دا شي مخكې امانت وو. دغه ډول اوس هم پاتې وو. خو اجير ته به اجرت نه ملاويږي. ځكه چې دا شي د حواله كاوه نه وړاندې هلاك شو.

**وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ** رحمهما الله: **الْعَيْنُ كَانَتْ مَضْمُونَةً قَبْلَ الْحَبْسِ** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز عين شي مضمون وو. د منع كاوه نه وړاندې **فَكَذَا بَعْدَهُ**، نو هم داسې به د منع كاوه نه روسته هم وى. **لَكِنَّهُ بِالْخِيَارِ** خو مالك ته اختيار دې. **إِنْ**

**شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ غَيْرَ مَعْمُولٍ** چې د بغير جوړولو د قيمت تاوان واخلى. **وَلَا أَجْرَ لَهُ**، نو اجير لپاره به اجرت نه وى. **وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ مَعْمُولًا** او كه غواړى. د جوړشوى د قيمت تاوان دې واخلى. **وَلَهُ الْأَجْرُ** نو اجير لپاره به اجرت وى. **وَسَنُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى**

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د مسلك په نيز چونكه شي د منع كاوه نه وړاندې د ضمانت والا وو. نو د منع كاوه نه روسته به هم ضمانت وى. البته مالك ته به اختيار وى. كه غواړى. د شي د قيمت تاوان دې واخلى. كوم چې د عمل نه وړاندې وو. او اجرت دې نه وركوى. اوكه غواړى. د هغه قيمت تاوان دې واخلى. كوم چې د عمل نه روسته دې. او مزدورى دې وركړى.

## كاريګر كوم ځيز د اجرت لپاره نشي منع كولاې؟

قَالَ: (**وَكُلُّ صَانِعٍ لَيْسَ لِعَمَلِهِ أَثَرٌ فِي الْعَيْنِ**) و هر هغه كاريګر چې د هغه د فعل اثر په عين شي كې ښكاره نه وى. **فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْبِسَ الْعَيْنَ لِلْأَجْرِ** نو هغه نشى منع كولې عين شي د اجرت په وجه **كَالْحَمَّالِ وَالْمَلَّاحِ**؛ لكه بوج اوچتونكې، او مانړګې (كشتى بان) **وَ أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ نَفْسُ الْعَمَلِ** ځكه چې معقود عليه عين عمل دې. **وَهُوَ غَيْرُ قَائِمٍ فِي الْعَيْنِ** او هغه عين شي كې قائم نه دې. **فَلَا يُتَصَوَّرُ حَبْسُهُ** نو د هغې منع كول متصور نه دى. **فَلَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الْحَبْسِ وَغَسْلُ الثَّوْبِ نَظِيرُ الْحَمْلِ**، نو هغه ته به د منع كاوه حق نه وى. او كپړه پريمنځل (وينځل) د قلى (بوج اوچتونكى) مثال دې.

(1) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى كنز (٣١٣) ومجمع الأنهر (٥١٩\٣) وردالمحتار (١٢\٥) ورسائل ابن عابدين (٤٤\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٦\٢)_

**تشريح:** او د کوم اجير د کار اثر چې په عين شئ کې نه وي. لکه چې بوج اوچتونکې ( قلي ) په شا بندې يا په خاروی باندې بوج بار کړو. يا ماڼرګی ( کشتي بان) په کښتئ کې بار کړو. او سامان ئې اورسولو. چه د هغه د رسولو هيڅ اثر په دې مال کې قائم نه دې. نو د داسې اجير لپاره د منع کاوه حق نشته. ځکه چې دلته کې معقود عليه نفس عمل دې. چه دا عين شئ سره قائم نه دې. او ددې منع کول غير متصور دی. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه کپړه پريمنځل (وينځل)، د قلي ( بار اوړونکي ) مثال دې. يعنی که دهوبی صرف کپړه اووينځله. او هيڅ شئ ئې استعمال نکړو. نو هغه د اجرت لپاره کپړه نشي منع کولې. او که استری وغيره ئې اوکړله. نو منع کولې شي. ځکه چې د استرئ اثر قائم وي.

**وَهٰذَا بِخِلَافِ الْآبِقِ حَيْثُ يَكُوْنُ لِلرَّادِّ حَقُّ حَبْسِهٖ** اودا د تختيدلي غلام په خلاف دی. چه د هغه د واپس راوستونکي لپاره د منع کاوه حق شته. **لِاسْتِيْفَاءِ الْجُعْلِ**، د خپلې مزدورئ حاصلولو دپاره، **وَلَا أَثَرَ لِعَمَلِهٖ**، حالانکه د هغه د کار هيڅ اثر نشته. **لِأَنَّهٗ كَانَ عَلٰی شَرَفِ الْهَلَاكِ وَقَدْ أَحْيَاهُ** ځکه چې غلام د هلاکت په غاړه لګيدلې وو. هغه دې راژوندې کړو. **فَكَأَنَّهٗ بَاعَهٗ مِنْهُ** نو ګويا هغه غلام د مالك په لاس خرڅ کړو. **فَلَهٗ حَقُّ الْحَبْسِ**، نو هغه ته د منع کاوه حق شته.

**تشريح:** دا د يوسوال ځواب دې. سوال دادې. که يو غلام تختيدلې وي. اودا يو سړې واپس راولي. نود واپس راوستونکي لپاره د خپلې مزدورئ حاصلولو په غرض ددې غلام د منع کاوه استحقاق وي. حالانکه د هغه د کار يعني د واپس راوستلو اثر په غلام کې قائم نه وي ؟

ځواب دادې. چه د غلام ذکر شوې دې. هغه د هلاکت په غاړه وو. چه دده واپس راوستونکي ګويا دې ژوندې کړو. ځکه چې د بنده ګانو نه کومه احياء ( ژوندي کول) متصور دی. هغه صرف هم دادې. چه دهلاکت نه ئې بچ کړي. لکه چې د الله تعالی د ارشاد ﴿وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا﴾ هم دا تفسير شوې دې. پاتې شو حقيقي ژوندي کول، نو هغه خو د الوهيت د خواصو څخه دی. نو راوستونکې ګويا دا غلام د مالك په لاس خرڅوي. او ځلوېښت پنځوس درهمه مزدوري ګويا دده ثمن دې. نو لکه څنګه چې بائع ته د ثمن لپاره د مبيع منع کاوه حق وي. دغه ډول به واپس راوستونکي ته د خپلې مزدورئ لپاره د غلام منع کاوه حق حاصل وي.

**وَهٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَا** اودا کوم څه چې موږ ذکر کړل. **مَذْهَبُ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ**. زموږ د دريو واړو عالمانو مذهب دې. **وَقَالَ زُفَرُ**: امام زفر رحمه الله فرمائي. **لَيْسَ لَهٗ حَقُّ الْحَبْسِ فِي الْوَجْهَيْنِ**؛ چې هغه ته د منع کاوه حق نشته. په دواړو صورتونو کې. **لِأَنَّهٗ وَقَعَ التَّسْلِيْمُ بِاتِّصَالِ الْمَبِيْعِ بِمِلْكِهٖ** ځکه چې سپارل واقع شو. د مستاجر ملك سره، د مبيع متصل کيدلو سره. **فَيَسْقُطُ حَقُّ الْحَبْسِ**. نو د منع کاوه حق ساقط شو.

**تشريح:** د ذکرشوې قاعدې مطابق اجاره کې د کوم کاريګر د کار اثر په مال عين کې قائم وي. هغه د اجرت لپاره منع کولې شي. ګنې نشي منع کولې. دا زموږ د دريو واړو عالمانو ( امام ابوحنيفه، ابويوسف او دامام محمد رحمهم الله) قول دې. امام زفر رحمه الله فرمائي. چه په عين شئ کې دده دعمل اثر وي. او که نه وي. په دواړو صورتونو کې دده ته د منع کاوه حق نشته. شيخ عتابي رحمه الله د امام شافعي رحمه الله قول هم دا ذکر کړې دې. ځکه چې د کاريګر د اړخه سپارل په داسې طريقه واقع شو. چه په کوم شئ باندې اجاره وه. هغه دمستاجر ملك سره متصل شو. مثلاً د کپړې رنګ کونکي رنګ د مستاجر په کپړه کې ملاؤ شو. نو هغه مستاجر ته اوسپارلې شو. او د سپارلو نه روسته د منع کاوه حق نه وي.

**وَلَنَا** زموږ دليل دا دې. **أَنَّ الْاِتِّصَالَ بِالْمَحَلِّ ضَرُوْرَةُ إِقَامَةِ تَسْلِيْمِ الْعَمَلِ** چې محل سره متصل کيدل، د کار صحيح کيدلو په اړتيا سره وو. **فَلَمْ يَكُنْ هُوَ رَاضِيًا بِهٖ مِنْ حَيْثُ أَنَّهٗ تَسْلِيْمٌ** نو هغه په دې سره په دې معنی راضي نشو. چه هغه سپارل دی. **فَلَا يَسْقُطُ حَقُّ الْحَبْسِ** نود منع کاوه حق به نه ساقطيږي. **كَمَا إِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِيْ بِغَيْرِ رِضَا الْبَائِعِ**. لکه چې مشتري د بائع د رضامندئ نه بغير قبضه اوکړي.



**تشريح:** زموږ دليل دادې. چه ددې محل سره متصل کيدل خو د کار د صحيح کيدلو د اړتيا په وجه وو. نو کاريګر په دې اتصال سره په دې معنی راضي نشو. چه دا سپارل دی. نود منع کاوه حق به نه ساقطيږي. لکه مشتري که د بائع د رضامندئ نه بغير مبيع باندې قبضه اوکړي. نو بائع ته اختيار وي. چه دهغه نه ئې واپس واخلي. او ثمن لپاره ئې منع کړي. بهرحال رنګريز که د مستاجر په کپړه کې رنګ لګولې دې. نو دا ئې په دې مقصد سره نه دې لګولې. چه د کپړې په ذريعه دا رنګ مستاجر ته اوسپارم. بلکه ددې لپاره ئې لګولې دې. چه هغه ددې د کار د اجرت مستحق شي. نود اجرت په حق کې سپارل لازم نشو. په کاريګر باندې پخپله د کار کاوه د شرط لګولو حکم

**قَالَ**: ﴿**وَإِذَا شَرَطَ عَلَى الصَّانِعِ أَنْ يَعْمَلَ بِنَفْسِهٖ**﴾ کله ئې چې شرط اوکړو کاريګر باندې پخپله د کارکولو. **لَيْسَ لَهٗ أَنْ يَسْتَعْمِلَ غَيْرَهٗ**) نو هغه لپاره دا اختيار نشته. چه په بل چا باندې کار اوکړي. **لِأَنَّ الْمَعْقُوْدَ عَلَيْهِ الْعَمَلُ فِيْ مَحَلٍّ بِعَيْنِهٖ** ځکه چې معقود عليه د عمل متصل کيدل دی. خاص محل سره. **فَيَسْتَحِقُّ عَيْنَهٗ** نو هغه هم ددې مستحق دې. **كَالْمَنْفَعَةِ فِيْ مَحَلٍّ بِعَيْنِهٖ** خاص محل کې د منفعت پشان،

**تشريح:** که مستاجر د کاريګر په ذمه دا شرط اولګولو. چه هغه به کار پخپله کوي. نو کاريګر ته به دا اختيار نه وي. چه هغه په بل چا باندې کار اوکړي. ځکه چې په کوم امر باندې عقد اجاره مقرر شوې ده. هغه دادې. چه کار يو خاص محل سره متصل وي. نو هغه هم ددې مستحق دې. لکه که مستاجر يو حيوان (ځاروې) د يو خاص منفعت د سوريدلو لپاره اجاره باندې واخستلو. نو هم ددې خاص منفعت استحقاق وي. تردې که موجر يو داسې حيوان (ځاروې) ورکړو. چه هغه صرف د بار اوړلو په کار راتلې شي. نو مستاجر باندې به هيڅ لازم نه وي. ځکه چې هغه د سوريدلو مستحق شوې وو. نو لکه څنګه چې د منفعت تخصيص صحيح کيږي. هم دغه ډول د کوم محل نه چې دا منفعت حاصل وي. د هغې تخصيص به هم صحيح وي.

﴿**وَإِنْ أَطْلَقَ لَهُ الْعَمَلَ**﴾ وکه عمل ئې مطلق اوساتلو. ﴿**فَلَهٗ أَنْ يَسْتَأْجِرَ مَنْ يَعْمَلُهٗ**﴾ نو هغه نوکر ساتلې شي. هغه څوك چې هغه دا کار اوکړي. **لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ عَمَلٌ فِيْ ذِمَّتِهٖ**، ځکه چې دده په ذمه د کار استحقاق دې. **وَيُمْكِنُ إِيْفَاؤُهٗ بِنَفْسِهٖ** چې ددې پوره کول ممکن دی. **وَبِالْاِسْتِعَانَةِ بِغَيْرِهٖ بِمَنْزِلَةِ إِيْفَاءِ الدَّيْنِ** پخپله هم، او د بل چا نه کومك اخستلو سره هم. په منزله د پور اداکولو.

**تشريح:** اوکه مستاجر ددې لپاره عمل مطلق اوساتلو. يعنی ددې پخپله د کاوه شرط ئې او نه لګولو. نو کاريګر په بل باندې کار کولې شي. ځکه چې دده په ذمه د کار استحقاق دې. چه دا په دواړه طريقه پوره کيدلې شي. چه پخپله ئې اوکړي. يا ئې په بل چا اوکړي. لکه څنګه چې د پور اداء کول دی. چه پخپله ئې اداکړي. يا ئې د خپل وکيل په ذريعه ادا کړي. دواړه شان جائز دی.

## د نامکمل کار د اجرت حکم

(**فَصْلٌ**) فصل: ﴿**وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا**﴾ يو کس يو سړې په اجاره باندې واخستلو. **لِيَذْهَبَ إِلَى الْبَصْرَةِ** چې هغه بصرې ته لاړ شي. **فَيَجِيْءَ بِعِيَالِهٖ** و دده کور والا راولي. **فَذَهَبَ** نو هغه لاړلو. **فَوَجَدَ بَعْضَهُمْ قَدْ مَاتَ** و هغه بعض په داسې حال کې اوموندل. چه هغوی مړه شوی وو. **فَجَاءَ بِمَنْ بَقِيَ** نو هغه پاته پاتې راوستل. **فَلَهُ الْأَجْرُ بِحِسَابِهٖ**) نو هغه ته به مزدوري هم په دې حساب سره ملاويږي. **لِأَنَّهٗ أَوْفٰی بَعْضَ الْمَعْقُوْدِ عَلَيْهِ** ځکه چې هغه بعض معقود عليه پوره کړې دې. **فَيَسْتَحِقُّ الْعِوَضَ بِقَدْرِهٖ**، نود عوض مستحق به هم ددې په اندازه کيږي. **وَمُرَادُهٗ إِذَا كَانُوْا مَعْلُوْمِيْنَ** او مراد دادې. چه کله دا معلوم وي.

**تشريح:** مستاجر يو سړې ددې لپاره مزدور کړو. چه بصرې ته لاړ شي. چه زما اهل و عيال راولي. مزدور هلته کې لاړلو. او حال دا چې هغوی کې بعض خلګ مړه شوی وو. نو هغه پاته پاتې خلګ راوستل. نو هغه ته به

مزدوري هم په دې حساب سره ملاويږي. مثلاً ټوله مزدوري د اتو كسانو په اړه كي مقرر شوې وه. او هغه شپږ نفر راوستل. نو هم په دې حساب سره به څلورمه برخه مزدوري ساقطيږي. ځكه چې ده بعض معقود عليه پوره كړې دې. نو هم د دومره عوض مستحق به وي. خودا هغه وخت دی. چه اجير ته د أهل و عيال تعداد د وړاندې نه معلوم وي. چه هغوی لس يا پنځلس دي. ګنی (كه وړاندې نه معلومه نه وي نو) پوره اجرت به ملاويږي.

(وَإِنْ اسْتَأْجَرَهُ) وكه په اجاره باندې نې ددې لپاره واخستلو. لِيَذْهَبَ بِكِتَابِهِ إِلَى فُلَانٍ بِالْبَصْرَةِ چې دده خط بصره كي فلانی كس له يوسی. وَيَجِيءَ بِجَوَابِهِ او دهغه ځواب راوړي. فَذَهَبَ نو هغه لاړلو. فَوَجَدَ فُلَانًا مَيِّتًا و فلانې نې مړ اوموندلو. فَرَدَّهُ و خط نې واپس راوړلو. فَلَا أَجْرَ لَهُ) هَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ. نو دده لپاره به اجرت نه وي. دا دشيخينو رحمهما الله په نيز دی.

**تشريح:** زيد عمرو په اجرت باندې اونيولو. چه هغه دده خط بكر ته يوسی. او دهغه ځواب راوړي. عمرو بكر ته اورسيدلو. نو هغه مړشوی وو. په دې وجه عمرو خط واپس راوړو. د شيخينو رحمهما الله په نيز به عمرو ته هيڅ اجرت نه ملاويږي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائي. لَهُ الْأَجْرُ فِي الذَّهَابِ[1] چې دده لپاره به د تللو مزدوري وي. لِأَنَّهُ أَوْفَى بَعْضَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ، ځكه چې ده بعض معقود عليه پوره كړې دې. وَهُوَ قَطْعُ الْمَسَافَةِ، او هغه مسافه قطع كول دي. وَهَذَا لِأَنَّ الْأَجْرَ مُقَابَلٌ بِهِ او دا ځكه چې اجرت هم ددې په مقابله كې دې. لِمَا فِيهِ مِنَ الْمَشَقَّةِ دُونَ حَمْلِ الْكِتَابِ لِخِفَّةِ مُؤْنَتِهِ. چې د معقود عليه كار خط اوړل دی. وَلَهُمَا أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ نَقْلُ الْكِتَابِ، لِأَنَّهُ هُوَ الْمَقْصُودُ ځكه چې هم دا مقصود دې. أَوْ وَسِيلَةٌ إِلَيْهِ يا ددې وسيله ده. وَهُوَ الْعِلْمُ بِمَا فِي الْكِتَابِ او هغه په دې باندې خبريدل دی. كوم چې په خط كې دی. وَلَكِنَّ الْحُكْمَ مُعَلَّقٌ بِهِ خو حكم ددې د منتقل كاوه سره متعلق دې. وَقَدْ نَقَضَهُ حالانكه ده هغه مات كړو. فَيَسْقُطُ الْأَجْرُ نو اجرت به ساقطيږي. كَمَا فِي الطَّعَامِ وَهِيَ الْمَسْأَلَةُ الَّتِي تَلِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةَ لكه څنګه چې په طعام نقل كاوه كې دی. كومه چې ددې مسئلې نه روسته ده.

**تشريح:** د امام محمد رحمه الله په نيز به صرف د تللو اجرت ملاويږي. او كه چا ته د خوراك رسولو لپاره اجرت باندې اونيولو. او چا ارخ ته چې ليګلې شوې دې. د هغه د فوت كيدلو په وجه اجير خوراك واپس راوړلو. نو بالاتفاق به اجرت نه ملاويږي. وجه د توپير داده. چه د كوم شي لپاره په تللو كې محنت اومشقت نه وي. لكه خط يا زباني پيغام رسول، نو په داسې څيزونو كې د امام محمد رحمه الله په نيز معقود عليه قطع د مسافه وي. او هغه اوموندلې شو. نو اجير به د اجرت مستحق وي. اود كوم شي په اوړلو كې چې مشقت وي. لكه خوراك وغيره، هغې كې معقود عليه مرسل اليه (چاته چې ليګلې شی هغه) پورې ددې شي رسول وي. او هغه اونه موندې شو. په خلاف د شيخينو رحمهما الله چې ددوی په نيز معقودعليه دواړو صورتونو كې مرسل اليه پورې ددې شي رسول دی.

(وَإِنْ تَرَكَ الْكِتَابَ فِي ذَلِكَ الْمَكَانِ) وكه ده خط هم هلته كې پريښودلو. وَعَادَ و پخپله واپس راغی: يَسْتَحِقُّ الْأَجْرَ بِالذَّهَابِ بِالْإِجْمَاعِ) نود تللو د اجرت به مستحق وي. په اجماع سره. لِأَنَّ الْحَمْلَ لَمْ يَنْتَقِضْ ځكه چې خط اوړل مات نشو.. (وَإِنْ اسْتَأْجَرَهُ) كه په اجاره نې واخستلو. لِيَذْهَبَ بِطَعَامٍ إِلَى فُلَانٍ بِالْبَصْرَةِ چې غله په بصره كې فلانی له يوسی. فَذَهَبَ فَوَجَدَ فُلَانًا مَيِّتًا و فلانې نې مړ بيااموندلو. فَرَدَّهُ و غله نې واپس راوړله. فَلَا أَجْرَ لَهُ فِي قَوْلِهِمْ

[1] القول الراجح هو التطبيق بين القولين لأن قول الشيخين رحمهما الله قول المتون والعرف يؤيد قول محمد رحمه الله قال المفتي غلام قادر مدظله العالي إن كان المعقود عليه نقل الكتاب والرجوع بالجواب فالعمل على قول الشيخين رحمهما الله وإن كان المعقودعليه هو الذهاب والرجوع فالعمل على قول محمد رحمه الله كذا في القول الراجح (٢٢٧\٢)_



جَمِيعًا) نو هغه لپاره به اجرت نه وي. دټولو په قول كې. لِأَنَّهُ نَقَضَ تَسْلِيمَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ، ځكه چې ده د معقود عليه سپارل مات كړل. وَهُوَ حَمْلُ الطَّعَامِ، او هغه غله اوړل دی. بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ، په خلاف د خط د مسئلې، د امام محمد رحمه الله په قول باندې. لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ هُنَاكَ قَطْعُ الْمَسَافَةِ عَلَى مَا مَرَّ. وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ چې هلته كې معقود عليه مسافه قطع كول دی. لكه څنګه چې تير شو. والله اعلم بالصواب.

**تشريح:** او كه هغه خط هلته كې پريښولو. او راغی: نو په اجماع سره به د تللو د اجرت مستحق وي. ځكه چې د امام محمد رحمه الله په نيز چې كله د خط واپس راوړلو په صورت كې مزدوري حاصلوله. نو خط هلته كې د پريښولو په صورت كې به په درجه اولی مستحق وي. اود شيخينو رحمهما الله په نيز چې كله هغه خط راوتنه رلو او خط مقصود وو. نود اجرت مستحق شو.

## باب ما يجوز من الإجارة وما يكون خلافا فيها

ژباړه: (دا) باب د هغه (امورو) دې. چه جائز دی په اجاره كې، او د هغې كوم چې په دې كې خلاف دی.

**تشريح:** په نهايه او معراج الدرايه كې دی. چه د اجارې د مقدماتو ذكر كاوه نه روسته په دې باب كې د اجارې مقصود بيانوی. چه د اجارې كوم صورتونه جائز يا ناجائز دی. خو په قول د صاحب د نتائج په دې توجيه كې يو شان خلل دې. ځكه چې صاحب د كتاب د اجارې ناجائز عقدونه په دې باب كې نه دی ذكر كړي. د هغې ذكر د باب الاجارة الفاسده لاندې شوې دې. په دې باب كې خو د اجاره جائزه او دهغه امورو بيان دې. كوم چې د مستاجر د اړخه د موجر خلاف شمارلې كيږي. او كوم چې خلاف نه شمارلې كيږي.

### د كورونو او دوكانونو په كرايه د وركولو حكم

قَالَ: (وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الدُّورِ وَالْحَوَانِيتِ لِلسُّكْنَى جائز دی كورونه او دوكانونه په كرايه باندې اخستل. د اوسيدلو دپاره، وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ مَا يَعْمَلُ فِيهَا) اګرچه بيان نه كې (نكړي) هغه كار كوم به چې په دې كې كوی. لِأَنَّ الْعَمَلَ الْمُتَعَارَفَ فِيهَا السُّكْنَى ځكه چې متعارف عمل په دې كې اوسيدل دی. فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِ، نو هم دې اړخ ته به منصرف كولې شی. وَأَنَّهُ لَا يَتَفَاوَتُ او په اوسيدو كې هيڅ تفاوت نشته. فَصَحَّ الْعَقْدُ نو عقد به صحيح وي. وَلَهُ أَنْ يَعْمَلَ كُلَّ شَيْءٍ) لِلْإِطْلَاقِ او هغه هركار كولې شی. د اطلاق په وجه،

**تشريح:** د كور او دوكان اجاره صحيح ده. اګرچه هغه كار بيان نكړي. كوم چې په دې كې كولې شی. خودا استحساناً دی. د قياس په رو سره جائز نه دی. ځكه چې كور او دوكان كې مختلف كارونه كيدلې شی. نو معقود عليه مجهول شوه. وجه د استحسان داده. چه په دې كې عمل متعارف رهائش او اوسيدل دی. چه دا په اختلاف د عامل سره نه مختلف كيږي. او امر متعارف د مشروط پشان دې. په دې وجه اجاره صحيح ده.

(إِلَّا أَنَّهُ لَا يُسْكِنُ حَدَّادًا وَلَا قَصَّارًا وَلَا طَحَّانًا، مګر اهنګر (لوهار)، دهوبی، او ميچن كاوه والا به نه اوسوی. لِأَنَّ فِيهِ ضَرَرًا ظَاهِرًا) ځكه چې په دې كې ښكاره ضرر دې. لِأَنَّهُ يُوهِنُ الْبِنَاءَ ځكه چې دا عمارت كمزورې كوی. فَيَتَقَيَّدُ الْعَقْدُ بِمَا وَرَاءَهَا دَلَالَةً نو عقد به ددې نه د ماسوا سره مقيد وي. د دلالت په طور،

**تشريح:** اوس مستاجر چې كوم كار غواړي كولې شی. (په دې شرط چې په دې سره عمارت او بنيادونو ته نقصان او نه رسيږي. لكه اودس يا غسل كول، خپلې كپړې وينځل، لرګی ماتول، سامان ايخودل وغيره) ځكه چې عقد مطلق دې. البته اهنګر (لوهار)، دهوبی د ريښمو كپړو، او غته ميچن لګونكې د خلګو غلې اوړه كاوه والا به نه اوسوی. ځكه چې ددې كارونو سره عمارت كمزورې كيږي. نو عقد مذكور اګرچه مطلق دې. خو د دلالت په طور به ددې كارونو نه علاوه سره مقيد وي.

### د زمكې په كرايه د اخستلو حكم

قَالَ: ﴿وَيَجُوْزُ اسْتِئْجَارُ الْأَرَاضِيْ لِلزِّرَاعَةِ﴾ او جائز دی زمکې په کرایه باندې اخستل د زمینداری دپاره، لِأَنَّهَا مَنْفَعَةٌ مَقْصُوْدَةٌ مَعْهُوْدَةٌ فِيْهَا خکه چې دا په دې کې معهود او مقصودی منفعت دې. ﴿وَلِلْمُسْتَاْجِرِ الشِّرْبُ وَالطَّرِيْقُ، وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطْ﴾ ومستاجر لپاره به وی. د اوبو برخه او لاره اګرچه ددې شرط نې نه وی کړې. لِأَنَّ الْإِجَارَةَ تُعْقَدُ لِلْاِنْتِفَاعِ، خکه چې اجاره منعقد کیږی د انتفاع دپاره، وَلَا انْتِفَاعَ فِي الْحَالِ إِلَّا بِهِمَا او انتفاع نشی کیدای ددې نه بغیر، فَيَدْخُلَانِ فِيْ مُطْلَقِ الْعَقْدِ، نودا به په مطلق عقد کې داخل وی.

**تشریح:** زمکې کروندې لپاره اجاره باندې اخستل جائز دی. خکه چې زمکې سره په عامه توګه (عام طور) باندې هم دا فائده حاصلولې شی. چه په دې کې کرونده اوکړې شی. او دا فائده پخپله مقصود وی. اوس به مستاجر ته د زمکې اوبه کاوه اوبه، او دې ته د ورتللو لاره هم ملاویږی. اګرچه ده په اجاره کې ددې شرط نه وی کړې. خکه چې اجاره خو انتفاع لپاره منعقد کیږی. حالانکه د اوبو برخه او لارې نه بغیر نفع حاصلول ممکن نه دی. نودا دواړه شیان به په مطلق عقد کې داخل وی.

بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع. لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْهُ مِلْكُ الرَّقَبَةِ چې په دې کې ملك رقبه مقصود وی. لَا الْاِنْتِفَاعُ فِي الْحَالِ، فی الحال نفع اوچتول (مقصود) نه وی. حَتّٰى يَجُوْزَ بَيْعُ الْجَحْشِ وَالْأَرْضِ السَّبْخَةِ دُوْنَ الْإِجَارَةِ تردې چې د اسپې د بچی او د جبهٔ زمکې بیع جائز ده. اجاره (جائز) نه ده. فَلَا يَدْخُلَانِ فِيْهِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِ الْحُقُوْقِ نودا به په بیع کې داخل نه وی. د حقوقو د ذکر کاوه نه بغیر. وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوْعِ اودا په کتاب البیوع کې تیر شو.

**تشریح:** په خلاف د بیع، چې په دې سره ملك رقبه مقصود وی. فی الحال نفع اخستل مقصود نه وی. تردې چې د اسپې د بچی اود جبهٔ زمکې بیع جائز ده. او اجاره جائز نه ده. نو په بیع کې به د حقوقو ذکر کاوه نه بغیر د اوبو برخه او لاره داخل نه وی.

﴿وَلَا يَصِحُّ الْعَقْدُ﴾ و عقد به صحیح نه وی. ﴿حَتّٰى يُسَمِّيَ مَا يَزْرَعُ فِيْهَا﴾ تردې چې بیان کړی هغه چې د څه کرونده کوی په دې (مځکه) کې. لِأَنَّهَا قَدْ تُسْتَاْجَرُ لِلزِّرَاعَةِ وَلِغَيْرِهَا خکه چې کله کله مځکه د کروندې لپاره په اجاره اخستلې کیږی. کله کله ددې نه دعلاوه دپاره. وَمَا يَزْرَعُ فِيْهَا مُتَفَاوِتٌ او په دې کې چې د څه کرونده کولې شی هغه شئ کم او زیات وی. فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعْيِيْنِ كَيْ لَا تَقَعَ الْمُنَازَعَةُ نو تعین ضروری دې. چه جګړه پیدا نشی.

**تشریح:** دزمینداری په غرض د زمکې عقد اجاره جائزده. خودا جواز هغه وخت دې. کله چې هغه شئ بیان کړی. دکوم چې به دې په دې مځکه کې کرونده کوی. خکه چې د زمکې اجاره کله د زراعت لپاره وی. او کله د عمارت جوړولو، ونو لګولو، خیمې خښولو وغیره لپاره وی. بیا د کوم شئ کرونده چې کولې شی. هغې کې کمې زیاتې کیږی. لکه غنم، اوربشې، جوار، اوریژې، وغیره. چه په دې کې بعض شیان زمکې لپاره نقصان ده وی. او بعض ضررناك نه وی. په دې وجه ددې تعین ضروری دې. چه روسته جګړه پیدا نشی.

﴿أَوْ يَقُوْلَ عَلٰى أَنْ يَزْرَعَ فِيْهَا مَا شَاءَ﴾ یا ووایې چې په دې شرط چې کړی به په دې کې چې څه غواړی. لِأَنَّهُ لَمَّا فَوَّضَ الْخِيَرَةَ إِلَيْهِ خکه چې هرکله مالك ده ته اختیار اوسپارلو. ارْتَفَعَتِ الْجَهَالَةُ الْمُفْضِيَةُ إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو جګړې پورې رسونکې جهالت ختم شو.

**تشریح:** البته که هغه دا وئیلی وی. چه د کوم شئ غواړې. کرونده کوه. نو په دې صورت کې چې څه غواړی زمینداری کولې شی. خکه چې هرکله مالك مستاجر ته اختیار ورکړو. نود هیرې په وجه چې کومه جګړه پیدا کیدای شوه. هغه لرې شوه. د امام مالك او امام شافعی ﷫ مذهب هم دادې. ﷺ وعن شریح انه لایصح حتی یبین ما یزرعه.

د عمارت جوړولو یا ونو لګولو لپاره د زمکې په کرایه باندې د اخستلو حکم



قَالَ: ﴿وَيَجُوْزُ أَنْ يَسْتَاْجِرَ السَّاحَةَ لِيَبْنِيَ فِيْهَا﴾ جائز ده حویلې (میدانی) مځکه کرایه باندې اخستل، د عمارت جوړولو، ﴿أَوْ لِيَغْرِسَ فِيْهَا نَخْلًا أَوْ شَجَرًا﴾ یا د کجورو ونې یا میوه دارې ونې لګولو دپاره، لِأَنَّهَا مَنْفَعَةٌ تُقْصَدُ بِالْأَرَاضِيْ خکه چې دا هم داسې منفعت دی. کوم چې په مځکه کې مقصود وی. ﴿ثُمَّ إِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْإِجَارَةِ﴾ بیا چې کله د اجارې موده تیره شی. ﴿لَزِمَهُ أَنْ يَقْلَعَ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ﴾ نو ضروری به وی مستاجر لپاره داچه وران کړی عمارت. او اوباسی ونې، ﴿وَيُسَلِّمَهَا إِلَيْهِ فَارِغَةً﴾ او حواله کړی خالی مځکه. لِأَنَّهُ لَا نِهَايَةَ لَهُمَا خکه چې د عمارت او ونو هیڅ انتها نشته. وَفِيْ إِبْقَائِهِمَا إِضْرَارٌ بِصَاحِبِ الْأَرْضِ نو په اجاره پاته ساتلو کې د زمکې مالك ته نقصان دې.

**حل اللغة:** ① ساحه: چوك، حویلې (میدانی) مځکه ② بناء: تعمیرکول، آبادول، ③ یغرس (ض) غرساً: ونې لګول، نخل: د کجورو ونې، ④ اضرار: نقصان ورکول، ⑤ بقل: سبزی، ترکاری، ادراك: پخپل وخت باندې رسیدل، ⑥ یغرم (س) غرماً: تاوان ورکول، ⑦ مقلوع: راوښکلې شوې، قلع: راوښکل، ⑧ رطبه: سپست (ګندنا)،

**تشریح:** که د عمارت جوړولو یا ونو لګولو لپاره مځکه په کرایه باندې واخلی. نو صحیح ده. اوس د اجارې موده پوره کیدلو نه روسته به مستاجر خپل عمارت ورانه وی. ونې به اوباسی. او خالی مځکه به مالك ته حواله کوی. یعنی هغه به په دې مجبوره کولې شی. اود زمکې مالك به د نقصان ضامن هم نه وی. امام مالك او امام مزنی شافعی ﷫ هم ددې قائل دی. امام شافعی او امام احمد ﷫ فرمائی. که د مودې پوره کیدلو باندې (ورانول یا) اوبشکل شرط وی. بیا هم دا حکم دې. اوکه عقد مطلق وی. نو په اوبشکلو به نشی مجبوره کولې. البته که مالك د نقصان ضامن شی. موږ دا وایو. چه د عمارت او ونو لپاره هیڅ انتهاء معلوم نه ده. نو په اجاره پاته ساتلو کې د زمکې د مالك ضرر دې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا انْقَضَتِ الْمُدَّةُ په خلاف ددې کله چې موده تیره شی. وَالزَّرْعُ بَقْلٌ حَيْثُ يُتْرَكُ بِأَجْرِ الْمِثْلِ إِلٰى زَمَانِ الْإِدْرَاكِ، او حال داچه فصل کچه سبزی ده. چه د هغې پخیدلو پورې به اجر مثل باندې پریخودلې شی. لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُوْمَةً خکه چې د فصل پخیدلو یوه موده معلومه ده. فَأَمْكَنَ رِعَايَةُ الْجَانِبَيْنِ. نود دواړو طرفونو رعایت ممکن دې.

**تشریح:** په خلاف ددې که په مځکه کې فصل ولاړ وی. اود اجارې موده تیره شوې وی. چه هغه به د پخیدلو پورې اجر مثل باندې پریخودلې شی. خکه چې ددې پخیدلو یوه انتهاء معلومه ده. نود دواړو طرفونو رعایت ممکن دی. چه د زمکې مالك ته به کرایه ملاوګ شی. او مستاجر ته به فصل پوخ ملاوګ شی.

قَالَ: ﴿إِلَّا أَنْ يَخْتَارَ صَاحِبُ الْأَرْضِ أَنْ يَغْرَمَ لَهُ قِيْمَةَ ذٰلِكَ مَقْلُوْعًا وَيَتَمَلَّكَهُ فَلَهُ ذٰلِكَ﴾ خودا چې اختیار کړی. د زمکې مالك د ولاړ فصل قیمت ورکول او مالك کیدل، نو هغه ته دا اختیار شته. وَهٰذَا بِرِضَا صَاحِبِ الْغَرْسِ وَالشَّجَرِ، إِلَّا أَنْ تَنْقُصَ الْأَرْضُ بِقَلْعِهِمَا اودا د بوټو او ونو په رضامندئ سره دی. خودا چې مځکه ناقص کیږی. ددې په اوبشکلو سره، فَحِيْنَئِذٍ يَتَمَلَّكُهُمَا بِغَيْرِ رِضَاهُ. چې دغه وخت د زمکې والا ددې مالك کیږی. د مستاجر د رضامندئ نه بغیر،

**تشریح:** اوکه د زمکې مالك د وران عمارت، او اوبشکلو شوو ونو قیمت ور کاوه باندې راضی شی. نودا هم کیدای شی. نود قیمت ور کاوه نه روسته به دې د عمارت او ونو مالك وی. اوکه مالك عمارت او ونې پخپله مځکه باندې پریږدی. نودا هم جائز ده. په دې صورت کې به مځکه د مالك وی. او عمارت او ونې به د مستاجر وی.

قَالَ: ﴿أَوْ يَرْضٰى بِتَرْكِهِ عَلٰى حَالِهِ﴾ یا راضی شی ددې پخپل حال باندې په پریښودلو. ﴿فَيَكُوْنُ الْبِنَاءُ لِهٰذَا وَالْأَرْضُ لِهٰذَا﴾ نو عمارت به دده. او مځکه به دهغه وی. لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ خکه چې حق خو د زمکې دمالك

دي. فَلَهُ أَنْ لَا يَسْتَوْفِيَهُ. نو هغه ته اختيار دی. چه خپل حق حاصل نکړي. قَالَ: (وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ:) او په جامع صغير کي دی. إِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْإِجَارَةِ، چي کله د اجارې موده تيره شوه. وَفِي الْأَرْضِ رَطْبَةٌ او حال داچه په مځکه کي رطبه (يو ډول گيا) ده. فَإِنَّهَا تُقْلَعُ) نو دا به اوبشکلې شي. لِأَنَّ الرِّطَابَ لَا نِهَايَةَ لَهَا خکه چې د رطاب هيڅ انتهاء نشته. فَأَشْبَهَ الشَّجَرَ نو دا د ونو مشابه شوه.

**تشريح: قوله وفى الارض رطبة** رطبه يو ډول نرمه سبزی ده. چه دې ته فارسۍ کې ،، سپست ،، وانی. او بعضو ددې ژباړه ،، گندنا ،، کړې ده. او په شامی کې منقول دی. چه بادرنگ، ختيکی، باتينگړ وغيره ته رطبه وانی. دا چې يو خل اوکرلې شي. نو ډيرو ورخو پورې پاته وی. خکه چې ددې جرړې مځکه کې ډيرې مودې پورې وی. نو ددې حکم د ونو پشان دې. يعنی مستاجر لپاره ددې اوبشکل او خالی مځکه مالك ته حواله کول لازم دی. خکه چې هرکله د رطبه هيڅ انتهاء نشته. اودا د ونو پشان شو. نود اجارې د مودې نه روسته ددې اوبشکل ضروری دی. په خلاف د فصل، چې د اجارې موده ختمه شی. او د فصل کټ کاوه وخت نه وی راغلې. نو مستاجر به د فصل په کټ کاوه نشی مجبورولې. بلکه د کټ کاوه وخته پورې به مهلت ورکولې شی. اود زمکې مالك ته به اجر مثل ورکولې شی.

## د سوريدلو او بوج راوړلو لپاره د خاروی په کرايه باندې د اخستلو حکم

قَالَ: (وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الدَّوَابِّ لِلرُّكُوبِ وَالْحَمْلِ) او جائز دی خاروی په کرايه باندې اخستل، د سوريدلو او بوج راوړلو دپاره. لِأَنَّهُ مَنْفَعَةٌ مَعْلُومَةٌ مَعْهُودَةٌ خکه چې دا معلوم او مقصودی منفعت دې. (فَإِنْ أَطْلَقَ الرُّكُوبَ نو که سوريدل ئې مطلق اوساتل. جَازَ لَهُ أَنْ يُرْكِبَ مَنْ شَاءَ) عَمَلًا بِالْإِطْلَاقِ. نو جائز دی دده لپاره دا چې سواره کړي چې څوك غواړي. اطلاق باندې عمل کاوه سره. وَلَكِنْ إِذَا رَكِبَ بِنَفْسِهِ خو کله چې دې پخپله سور شو. أَوْ أَرْكَبَ وَاحِدًا يا ده بل څوك سواره کړل. لَيْسَ لَهُ أَنْ يُرْكِبَ غَيْرَهُ نو اوس بل څوك نشی سورولې. لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ مُرَادًا مِنَ الْأَصْلِ، خکه چې اصل اطلاق نه هم دا مراد متعين شو. وَالنَّاسُ يَتَفَاوَتُونَ فِي الرُّكُوبِ او خلگ چونکه په سوريدلو کې متفاوت وی. فَصَارَ كَأَنَّهُ نَصَّ عَلَى رُكُوبِهِ نو گويا چې ده دده د سورولو صراحت کړې وو. (وَكَذَلِكَ إِذَا اسْتَأْجَرَ ثَوْبًا لِلُّبْسِ دغه ډول که کپړه ئې اجرت باندې اغوستلو لپاره واخستله. وَأَطْلَقَ جَازَ فِيمَا ذَكَرْنَا) لِإِطْلَاقِ اللَّفْظِ وَتَفَاوُتِ النَّاسِ فِي اللُّبْسِ او اغوستل ئې مطلق اوساتل. د لفظ د اطلاق او اغوستلو کې د خلگو د تفاوت په وجه. (وَإِنْ قَالَ: او که وې وئيل عَلَى أَنْ يَرْكَبَهَا فُلَانٌ چې په دې شرط چې فلانې به سوريږی. أَوْ يَلْبَسَ الثَّوْبَ فُلَانٌ يا به کپړه فلانې سرې اغوندی. فَأَرْكَبَهَا غَيْرَهُ يا ئې بل څوك سواره کړل. أَوْ أَلْبَسَهُ غَيْرَهُ يا ئې کپړه بل چاته واغوستله. فَعَطِبَ او دا کپړه ضائع شوه. كَانَ ضَامِنًا) نو ضا من به وی. لِأَنَّ النَّاسَ يَتَفَاوَتُونَ فِي الرُّكُوبِ وَاللُّبْسِ خکه چې خلگ متفاوت وی. په سوريدلو او اغوستلو کې. فَصَحَّ التَّعْيِينُ، نو تعيين صحيح شو. وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَعَدَّاهُ، او مستاجر لپاره ددې نه تجاوز کول جائز نشو. وَكَذَلِكَ كُلُّ مَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ لِمَا ذَكَرْنَا. او هم داسې دی هرهغه شئ کوم چې مختلف کيږی. د استعمالونکی په اختلاف سره. په مذکوره دليل سره. فَأَمَّا الْعَقَارُ وَمَا لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ پاتې شو جائيداد او هغه شئ کوم چې د استعمالونکی په اختلاف سره نه مختلف کيږی. إِذَا شَرَطَ سُكْنَى وَاحِدٍ نو که په دې کې ئې د چا اوسيدل شرط کړو. فَلَهُ أَنْ يُسْكِنَ غَيْرَهُ نو دې بل څوك اوسولې شی. لِأَنَّ التَّقْيِيدَ غَيْرُ مُفِيدٍ لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ خکه چې د چا قيد لگول غيرمفيد دی. د تفاوت نه کيدلو په وجه. الَّذِي يَضُرُّ بِالْبِنَاءِ، وَالَّذِي يَضُرُّ بِالْبِنَاءِ خَارِجٌ عَلَى مَا ذَكَرْنَا او کوم فعل چې عمارت ته ضرر اورسوی. هغه البته خارج دې. په دې بناء، کوم چې موږ ذکر کړل.

**حل اللغة: دواب:** د دابة جمع ده، خاروی ، **يركب اركابا:** سوه رول، **ركب (ض) ركوبا:** سوريدل، **لبس:** اغوستل،



**عطب (س) عطبا:** هلاکيدل، **يتعداه تعديا:** تجاوز کول، **عقار:** جائيداد.

**تشريح: قوله استيجار الدواب** حيوان (خاروې) د سوريدلو او بار اوړلو لپاره اجاره باندې اخستل جائز دی. اوس که عقد مطلق وی. نو مستاجر چې څوك غواړی سورولې شی. خو که هغه پخپله سور شو يا هغه بل څوك سواره کړل. نو ددې نه روسته بل څوك نشی سورولې. خکه چې اصل اطلاق سره هم دا مراد متعين شو. او په سوريدلو کې چونکه د خلگو حالات متفاوت کيږی. نو گوياهغه په سوريدلو کې دا سړي صراحت سره بيان کړې وو. هم دا حکم د کپړې د اجارې دې.

## د بوج نوعيت او مقدار بيانولو نه روسته د بل قسم بوج بار کولو حکم

قَالَ: (وَإِنْ سَمَّى نَوْعًا وَقَدْرًا مَعْلُومًا يَحْمِلُهُ عَلَى الدَّابَّةِ) که بيان کړی نوع او معلوم مقدار کوم چې په خاروی باندې بار کوی. مِثْلَ أَنْ يَقُولَ خَمْسَةَ أَقْفِزَةِ حِنْطَةٍ مثلاً وې وئيل. چه د غنمو پنځه قفيزه. فَلَهُ أَنْ يَحْمِلَ مَا هُوَ مِثْلُ الْحِنْطَةِ فِي الضَّرَرِ أَوْ أَقَلَّ نو هغه بار کولې شی. داسې شئ چې هغه د غنمو پشان وی په ضرر کې، يا ددې نه کم وی. كَالشَّعِيرِ وَالسِّمْسِمِ) لکه اوربشې او کونځلې. لِأَنَّهُ دَخَلَ تَحْتَ الْإِذْنِ لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ، أَوْ لِكَوْنِهِ خَيْرًا مِنَ الْأَوَّلِ خکه چې دا د اجازت لاندې داخل دی. د تفاوت نه کيدلو يا د رومبی نه د غوره کيدلو په وجه. (وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْمِلَ مَا هُوَ أَضَرُّ مِنَ الْحِنْطَةِ او ده ته دا اختيار نشته. چه بار کړی داسې شئ کوم چې د غنمو نه زيات ضررناك وی. كَالْمِلْحِ وَالْحَدِيدِ) لکه مالگه او اوسپنه. لِانْعِدَامِ الرِّضَا فِيهِ په دې کې د رضامندۍ نه کيدلو په وجه. (وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا که حيوان (خاروې) ددې لپاره په کرايه باندې واخستلو. لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا قُطْنًا سَمَّاهُ چې په دې به مالوچ بار کوی. چه ددې وزن ئې بيان کړو. فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهَا مِثْلَ وَزْنِهِ حَدِيدًا) نو هغه ته دا اختيار نشته چه ددې په وزن اوسپنه بار کړی. لِأَنَّهُ رُبَّمَا يَكُونُ أَضَرَّ بِالدَّابَّةِ خکه چې ډير خله اوسپنه زياته ضررناکه وی. فَإِنَّ الْحَدِيدَ يَجْتَمِعُ فِي مَوْضِعٍ مِنْ ظَهْرِهَا خکه چې اوسپنه مجتمع وی. ددې په شا باندې په يو ځائې باندې. وَالْقُطْنُ يَنْبَسِطُ عَلَى ظَهْرِهَا. او مالوچ ددې په شا باندې خوريږی. قَالَ: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَرْكَبَهَا که حيوان (خاروې) ئې د سوريدلو لپاره په کرايه باندې ئې واخستلو. فَأَرْدَفَ مَعَهُ رَجُلًا اود ځان شاته ئې بل څوك سواره کړل. فَعَطِبَتْ او هغه هلاك شو. ضَمِنَ نِصْفَ قِيمَتِهَا نو ددې د نصف قيمت به ضامن وی. وَلَا مُعْتَبَرَ بِالثِّقَلِ) اود بوج اعتبار به نه کيږی. لِأَنَّ الدَّابَّةَ قَدْ يَعْقِرُهَا جَهْلُ الرَّاكِبِ الْخَفِيفِ خکه چې کله کله د سپك سوريدونکی نا پوهتيا حيوان (خاروې) خرابه وی. وَيَخِفُّ عَلَيْهَا رُكُوبُ الثَّقِيلِ لِعِلْمِهِ بِالْفُرُوسِيَّةِ، او کله کله د دروند سړی سوريدل په دې باندې آسان وی. دده د سوريدلو د پوهيدلو په وجه. وَلِأَنَّ الْآدَمِيَّ غَيْرُ مَوْزُونٍ او خکه چې سړې وزنی شئ نه دې. فَلَا يُمْكِنُ مَعْرِفَةُ الْوَزْنِ نو دده وزن پيژندل ناممکن دی. فَاعْتُبِرَ عَدَدُ الرَّاكِبِ نود سوارلو شمير معتبر شو. كَعَدَدِ الْجُنَاةِ فِي الْجِنَايَاتِ. لکه په جناياتو کې د مجرمانو شمير. قَالَ: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا مِقْدَارًا مِنَ الْحِنْطَةِ که په کرايه ئې واخستلو د غنمو د يو مقدار بار کاوه دپاره. فَحَمَلَ عَلَيْهَا أَكْثَرَ مِنْهُ يا ددې نه زيات بار کړو. فَعَطِبَتْ و هغه هلاك شو. ضَمِنَ مَا زَادَ الثِّقَلُ) نود زياتی بوج په اندازه به ضامن وی. لِأَنَّهَا عَطِبَتْ بِمَا هُوَ مَأْذُونٌ فِيهِ وَمَا هُوَ غَيْرُ مَأْذُونٍ فِيهِ خکه چې هغه په داسې بوج سره هلاك شو. په کوم کې چې دې ماذون دې. او په کوم کې چې ماذون نه دی. وَالسَّبَبُ الثِّقَلُ او سبب هم دا بوج دې. فَانْقَسَمَ عَلَيْهِمَا نو هغه به په دې دواړو باندې تقسيميږی. (إِلَّا إِذَا كَانَ حِمْلًا لَا يُطِيقُهُ مِثْلُ تِلْكَ الدَّابَّةِ خو کله چې دومره بوج وی. چه دا داسې قسمه حيوان (خاروې) نشی اوچتولې. فَحِينَئِذٍ يَضْمَنُ كُلَّ قِيمَتِهَا) نو دغه وخت به ضامن وی. د پوره قيمت. لِعَدَمِ الْإِذْنِ فِيهَا أَصْلًا لِخُرُوجِهِ عَنِ الْعَادَةِ. خکه چې ددې اجازت بالکل نشته. دعادت نه د بهر کيدلو په وجه.

**تشريح:** يو سړی يو حيوان (خاروې) په کرايه باندې واخستلو. او په دې کې چې کوم بوج بار کوی. د هغې نوع او

مقدار ئې بيان کړله.مثلاً دا چې دوې (دوه) منه غنم به بار کوی.نو هغه په دې باندې د غنمو پشان بل څه شی.مثلاً دوې (دوه) منه اوريشې هم بار کولې شی.دغه ډول کوم شی؛ چې ددې نه سپك وی.لكه كونځلې وغيره، هغه هم دوې (دوه) منه بار کولې شی.خو کوم شی؛ چې د غنمو نه زيات نقصان ده وی.هغه نشی بار کولې.لكه اوسپنه او مالګه وغيره. ځکه چې موجر په دې سره راضی نه دې.

د کرایې ځاروی د هلاکيدلو مسئله

قال: (وَإِنْ كَبَحَ الدَّابَّةَ بِلِجَامِهَا) كه رائيبنكلو حيوان (ځاروی) ددې د واګو نه. (أَوْ ضَرَبَهَا) يا ئې دا اووهلو. (فَعَطِبَتْ) او هغه هلاك شو. (ضَمِنَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)(١) نو ضامن به وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. (وَقَالَا:) صاحبين رحمهما الله فرمائی. (لَا يَضْمَنُ إِذَا فَعَلَ فِعْلًا مُتَعَارَفًا) چې ضامن به نه وی.کله چې ده متعارف فعل کړې وی. (لِأَنَّ الْمُتَعَارَفَ مِمَّا يَدْخُلُ تَحْتَ مُطْلَقِ الْعَقْدِ) ځکه چې متعارف فعل د مطلق عقد لاندې داخل وی. (فَكَانَ حَاصِلًا بِإِذْنِهِ) نو دده په اجازت سره شو. (فَلَا يَضْمَنُهُ) نو ددې ضامن به نه وی.

**تشریح:** كه د مستاجر په وهلو يا په واګو رابنکلو سره سوارلې؛ هلاکه شوه.نود امام صاحب رحمه الله د مسلك مطابق مستاجر باندې د كل قيمت تاوان راځی.صاحبين او آئمه ثلاثه رحمهم الله فرمائی.كه ده داسې اووهلو.يا ئې داسې واګې رابنكلې.كوم چې د دستور او عرف خلاف دی.نو تاوان به لازم وی.ګنی لازم به نه وی.ځکه چې كوم كار متعارف وی.هغه د مطلق عقد لاندې داخل وی.نودا فعل دده په اجازت سره اوموندلې شو.نو ضامن به نه وی.

(وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ) د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. (أَنَّ الْإِذْنَ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ) چې اجازت د سلامتيا شرط سره مقيد دې. (إِذْ يَتَحَقَّقُ السَّوْقُ بِدُونِهِ) ځکه چې چلول ددې نه بغير هم كيدای شی. (وَإِنَّمَا هُمَا لِلْمُبَالَغَةِ) او وهل يا واګې رابنکل، خو د تيز چلولو لپاره وی. (فَيَتَقَيَّدُ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ) نو اجازت به د سلامتيا وصف سره مقيد وی. (كَالْمُرُورِ فِي الطَّرِيقِ) لكه څنګه چې په لاره تيريدلو كې دی.

**تشریح:** د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه د مالك د اړخه اجازت د سلامتيا شرط سره مقيد دې.او ده د هغې خلاف کړې دی.ځکه چې د داسې وهلو او واګو رابنكلو نه بغير چلول ممكن وو.وهل او واګې رابنكل خو د تيز تللو لپاره وی.نو په دې كې اجازت د سلامتيا شرط سره مقيد دې.لكه څنګه چې په عامه لاره كې بوتلل جائز دی.په دې شرط چې سلامتيا سره وی.تردې كه د چا نقصان اوکړی.نو ضامن به وی.په در مختار كې دی.چه فتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.او په غاية البيان كې د تتمه په حواله سره منقول دی.چه امام ابوحنيفه رحمه الله هم دې اړخ ته رجوع کړې وه.

**د کرایه ځاروې د خاص مقام نه وړاندې بيولو (بوتللو) سره د هلاکت په صورت کښې د ضمان حکم**

قال: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا إِلَى الْحِيرَةِ) كه په كرايه ئې حيوان (ځاروی) واخستلو د حيره (ځانې) پورې. (فَجَاوَزَ بِهَا إِلَى الْقَادِسِيَّةِ) بيا ددې نه واوړختلو د قادسيه (مقام) پورې. (ثُمَّ رَدَّهَا إِلَى الْحِيرَةِ) بيا ئې واپس راوستلو دا د حيره مقام پورې. (ثُمَّ نَفَقَتْ) بيا هغه هلاك شو. (فَهُوَ ضَامِنٌ) نو هغه ضامن دې. (وَكَذَلِكَ الْعَارِيَةُ) او هم دغه ډول عاريت هم دې.

**تشریح:** كه د كوفې نه حيره پورې تللو لپاره ئې حيوان (ځاروی) په كرايه باندې عاريت واخستلو.بيا د حيره نه وړاندې قادسيه پورې بيولو (بوتللو).بيا ئې د هغه ځانې نه حيره ته واپس راوستلو.او حيوان (ځاروی) مړ

---

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر (٥٢٦\٣) وردالمحتار (٢٧\٥) ومجمع الأنهر (٥٢٦\٣) العناية (٢٩\٨) ونتائج الأفكار (٣٠\٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٢٨\٢)



شو.نو ضامن به وی.حيره د كوفې نه يو ميل فاصله باندې يو ښار دې.چه په دې كې شاه نعمان بن منذر اوسيدلو.او قادسيه هم يو ځانې دې.ددې اود كوفې په منځ كې پنځلس ميله مزل دې.

(وَقِيلَ تَأْوِيلُ هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ) ونيلی شوی دی.د مسئلې صورت دادې. (إِذَا اسْتَأْجَرَهَا ذَاهِبًا) چې ده په كرايه باندې حيوان (ځاروی) د تللو لپاره اخستې وو. (لَا جَائِيًا) او راتلو لپاره ئې نه وو اخستې. (لِيَنْتَهِيَ الْعَقْدُ بِالْوُصُولِ إِلَى الْحِيرَةِ) چې پوره شی عقد حيره مقام پورې رسيدلو سره. (فَلَا يَصِيرُ بِالْعَوْدِ مَرْدُودًا إِلَى يَدِ الْمَالِكِ مَعْنًى) نو په راواپس كاوه سره به مالك ته معنی واپس كونكې نه وی. (وَأَمَّا إِذَا اسْتَأْجَرَهَا ذَاهِبًا وَجَائِيًا) اوكه په كرايه ئې د تللو او راتګ لپاره واخستلو. (فَيَكُونُ بِمَنْزِلَةِ الْمُودَعِ) نودا به په منزله د مودع (امين په حفاظت مامور) وی. (إِذَا خَالَفَ) كله چې هغه خلاف اوکړی. (ثُمَّ عَادَ إِلَى الْوِفَاقِ) او بيا موافقت باندې راشی.

**تشریح:** دذكر شوې مسئلې په صورت كې د مشائخو اختلاف دې.علامه مرغينانی رحمه الله دا بيانوی.چه بعضو مشائخو ددې صورت داسې بيان کړې دې.چه مستاجر دا حيوان (ځاروی) صرف د تللو لپاره په كرايه باندې اخستې وو.د راتګ و لپاره ئې نه وو اخستې.چه حيره پورې رسيدلو سره عقد اجاره ختمه شی.او د قادسيه نه حيره پورې واپس راتګ و باندې هغه معنی (يعنی حكماً) مالك ته واپس كونكې نشو.يعنی ضامن به وی.اوكه ده د تللو او راتګ و دواړو لپاره كرايه باندې اخستې وی.نو دې به په منزله د مستودع وی.كله چې دې د مودع د حكم خلاف ورزی اوکړی.او بيا موافقت باندې راشی.چه هغه ضمانت نه بری كيږی.

(وَقِيلَ لَا بَلِ الْجَوَابُ مُجْرًى عَلَى الْإِطْلَاقِ) او ونيلی شوی دی. چې حكم اطلاق باندې جاری دې. (وَالْفَرْقُ أَنَّ الْمُودَعَ مَأْمُورٌ بِالْحِفْظِ مَقْصُودًا) او توپير دادې.چه واپس كونكې بالقصد ساتنه باندې مامور دې. (فَبَقِيَ الْأَمْرُ بِالْحِفْظِ بَعْدَ الْعَوْدِ إِلَى الْوِفَاقِ) نو موافقت باندې راتګ و نه روسته د ساتنه حكم پاته پاتې شو. (فَحَصَلَ الرَّدُّ إِلَى يَدِ نَائِبِ الْمَالِكِ) نود مالك د نائب په لاس كې واپس كول اوموندې شو. (وَفِي الْإِجَارَةِ وَالْعَارِيَةِ يَصِيرُ الْحِفْظُ مَأْمُورًا بِهِ تَبَعًا لِلِاسْتِعْمَالِ) او په اجاره او عاريت كې د ساتنه حكم تبعاً وی.د استعمال په وجه. (لَا مَقْصُودًا) قصداً نه وی. (فَإِذَا انْقَطَعَ الِاسْتِعْمَالُ) نو هركله چې استعمال منقطع شو. (لَمْ يَبْقَ هُوَ نَائِبًا) نو هغه د مالك نائب پاتې نشو. (فَلَا يَبْرَأُ بِالْعَوْدِ) نو په واپس راتلو سره به نه بری كيږی. (وَهَذَا أَصَحُّ) او هم دا قول زيات صحيح دې.

**تشریح:** او بعضو مشائخو ونيلی دی.چه مذكوره حكم على الاطلاق جاری دې.يعنی كه ده صرف د تللو لپاره كرايه باندې اخستې وی.يا ئې د تللو او راتګ و دواړو لپاره كرايه باندې اخستې وی.بهرحال په دواړو صورتونو كې هم دا حكم دې.چه ضامن به وی.ځکه چې امام محمد رحمه الله په جامع صغير كې ځواب مطلق ساتلې دې.

په وديعت او عاريت كې توپير د وديعت، عاريت او اجاره په منځ كې توپير دادې.چه مستودع بالقصد د ساتنه مامور وی.نو موافقت اړخ ته دوباره واپس راتګ و نه روسته د ساتنه حكم پاته پاتې شو.نو وديعت دده د نائب په لاس كې واپس كول اوموندې شو.په دې وجه هغه د ضمان نه بری كيږی.او په اجاره او عاريت كې د ساتنه حكم د استعمال په وجه تبعاً وی.قصداً نه وی.نو كله چې استعمال منقطع شو.نو هغه د مالك نائب پاتې نشو.نو حيره ته واپس راتګ و په وجه به هغه د ضمان نه بری كيږی.علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی.چه هم دا قول اصح دې.

**خر سره د زين نه په کرایه د اخستلو حکم**

قال: (وَمَنِ اكْتَرَى حِمَارًا بِسَرْجٍ) يو كس يو خر سره د زين (ګدۍ) نه په كرايه باندې واخستلو. (فَنَزَعَ السَّرْجَ) بيا هغه دغه زين لرې کړو. (وَأَسْرَجَهُ بِسَرْجٍ يُسْرَجُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ) و داسې زين ئې اولګولو.چه په خرو باندې داسې قسمه لګولې شی. (فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ) نو په ده باندې ضمان نشته. (لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ يُمَاثِلُ الْأَوَّلَ) ځکه چې هركله دا د

رومبی پشان دی. تَنَاوَلَهُ إِذْنُ الْمَالِكِ،نود مالك اجازت دې ته هم ګډ دې. إِذْلَا فَائِدَةَ فِي التَّقْيِيدِ بِغَيْرِهِ إِلَّا إِذَا كَانَ زَائِدًا عَلَيْهِ فِي الْوَزْنِ خكه چې ددې نه د علاوه قيد لګولو كې هيڅ فائده نشته.خودا چې دا په دې باندې زياتي وی په وزن كي. فَحِينَئِذٍ يَضْمَنُ الزِّيَادَةَ نو دغه وخت به د زياتوالي ضامن وی. (وَإِنْ كَانَ لَا يُسْرَجُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ او كه دا زين داسې وی.چه په خرو باندې ددې پشان نشي اچولې. ضَمِنَ) نو ضامن به وی. لِأَنَّهُ لَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْإِذْنُ مِنْ جِهَتِهِ خكه چې د مالك د اړخه اجازت دې ته ګډ نه دې. فَصَارَ مُخَالِفًا نو مستاجر مخالف شو.

**تشريح:** يوكس يو خر سره د زين نه په كرايه باندې واخستلو.بيا هغه زين لرې كړو. او داسې زين ئې اولګولو.چه په خرو باندې داسې قسمه زين لګولې شی.نو كه خر هلاك شی.نو ضمان به نه وی. خكه چې هركله دوهم زين د رومبی پشان دې.نود مالك اجازت دې ته هم ګډ دې.خكه چې رومبی زين سره قيد لګول بې فائدې دی.البته كه دوهم زين په وزن كي د رومبی نه زيات وی.نود زياتوالي به ضامن وی.اوكه دوهم زين داسې وی.چه ددې پشان ( خرو باندې) نشی لګولې.نود پوره قيمت به ضامن وی.خكه چې د مالك اجازت داسې زين ته ګډ نه دې.نو هغه مخالف شو.

## د خر زين بدلولو په صورت كښې د ضمان حكم

(وَإِنْ أَوْكَفَهُ بِإِكَافٍ لَا يُوكَفُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ) او كه داسې كَټه ئې اولګوله.چه په خرو باندې داسې كټه نشی لګولې (يَضْمَنُ) لِمَا قُلْنَا فِي السَّرْجِ،نو ضامن به وی.په هغه وجه كومه چې موږ د زين په اړه كي بيان كړله. وَهٰذَا أَوْلَى اودا په درجه اولی دی. (وَإِنْ أَوْكَفَهُ بِإِكَافٍ يُوكَفُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ) او كه داسې كټه ئې اولګوله.چه داسې قسمه په خرو باندې لګولې شی. يَضْمَنُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، (¹) ضامن به وی. په نيز د امام ابوحنيفه رحمه الله ،

**تشريح:** اوكه ده د رومبی زين لرې كاوه نه روسته داسې كټه اولګوله.چه په خرو باندې داسې قسمه نشی لګولې.نو ضامن به وی.په ذكر شوی دليل سره چې د مالك اجازت دې ته ګډ نه دې.نو په كټه كي به په درجه اولی ضامن وی.خكه چې كټه د زين د جنس خلاف ده.اوكه داسې پالان ئې اولګولو.چه ددې پشان لګولې شی.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ضامن وی.اوس پاتې شوه داخبره چې د پوره قيمت به ضامن وی.يا د زياتوالي په اندازه به ضامن وی ؟ علامه مرغينانی رحمه الله د جامع صغير د روايت اتباع كړې ده.اود مضمون مقدار ئې نه دې ذكر كړې.چه په جامع صغير كي د پوره قيمت ضامن كيدل ذكر نه دی.صرف دومره ذكر دی.چه هغه به ضامن وی.البته په اجارات كي ئې ذكر كړی دی.چه د زياتي په اندازه به ضامن وی.اوس بعض مشائخو دا فرمائيلی دی.چه په مسئله كي د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه نه دی.بلكه مطلق په مفسر باندې محمول دې.او بعض مشائخو فرمائيلی دی.چه په دې اړه كي دوې (دوه) روايتونه دی.د اجارات په روايت كي دی.چه د زياتوالي په اندازه به ضامن وی.اود جامع صغير په روايت كي به د پوره قيمت ضامن وی.شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله هم دې ته اصح وئيلی دی.

وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائی. يَضْمَنُ بِحِسَابِهِ) چې هم ددې په حساب به ضامن وی.

**تشريح:** صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه د زياتوالي په حساب سره به ضامن وی.اوس دا زياتوالي د پيمائش په لحاظ سره مراد دې.يا د وزن په لحاظ سره؟ بعض مشائخو فرمائيلی دی.چه د پيمائش په حساب سره مراد دې.كه زين د خاروی د شا نه دوې (دوه) ليشتې او كټه څلور ليشتې خائې راګيره وی.نود نصف قيمت به ضامن وی.او بعض مشائخو فرمائيلی دی.چه د وزن، سپكوالي او دروندوالي په حساب سره مراد دې.تردې

(¹) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في البحر الرائق (۷\۳۱۰) والزيلعي (۵\۱۱۹) ومجمع الأنهر (۳\۵۲۷) ردالمحتار(۵\۲۸) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۰۱)_



كه د زين وزن دوې (دوه) منه اود كټې وزن شپږ منه وی.نود قيمت دوې (دوه) ثلثه ( يعنی په دريو برخو كي دوې (دوه) حصې) به ضامن وی.

لِأَنَّهُ إِذَا كَانَ يُوكَفُ بِمِثْلِهِ الْحُمُرُ خكه چې هركله دا كټه داسې ده.چه په خرو باندې داسې قسمه لګولې شی. كَانَ هُوَ وَالسَّرْجُ سَوَاءً نو دا كټه او زين برابر شو. فَيَكُونُ الْمَالِكُ رَاضِيًا بِهِ، نو مالك به په دې هم راضی وی. إِلَّا إِذَا كَانَ زَائِدًا عَلَى السَّرْجِ فِي الْوَزْنِ خو كله چې دا په وزن كي زين باندې زياتی وی. فَيَضْمَنُ الزِّيَادَةَ نود زياتوالي به ضامن وی. لِأَنَّهُ لَمْ يَرْضَ بِالزِّيَادَةِ خكه چې مالك په زياتوالي باندې راضی نه دې. فَصَارَ كَالزِّيَادَةِ فِي الْحِمْلِ الْمُسَمّٰى إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِهِ.نودا د بيان شوی بوج د جنس نه د زيات بوج پشان شو.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه هركله دا كټه داسې ده.لكه څنګه چې په خرو باندې لګولې شی.نو كټه او زين دواړه برابر شو.نو مالك به په دې باندې هم راضی وی.اود پالان د زين نه د زيات وزنی كيدلو په صورت كي مالك په دې زياتوالي باندې راضی نه دې.نو داسې شوه.لكه چې د بوج مقدار ئې بيان كړې وی.بيا هم ددې جنس بوج ئې ددې نه زيات بار كړو.كه حيوان (څاروې) هلاك شو.نود زياتوالي په اندازه به ضامن وی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ الْإِكَافَ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ السَّرْجِ، چې كټه د زين د جنس څخې نه ده. لِأَنَّهُ لِلْحَمْلِ، خكه چې كټه د بوج لپاره وی. وَالسَّرْجُ لِلرُّكُوبِ، او زين د سوريدلو لپاره وی. وَكَذَا يَنْبَسِطُ أَحَدُهُمَا عَلَى ظَهْرِ الدَّابَّةِ مَا لَا يَنْبَسِطُ عَلَيْهِ الْآخَرُ دغه ډول د څاروی په شا باندې پالان په دومره اندازه خوريږی.څومره چې زين نه خوريږی. فَكَانَ مُخَالِفًا نو مستاجر مخالف شو. كَمَا إِذَا حَمَلَ الْحَدِيدَ وَقَدْ شَرَطَ لَهُ الْحِنْطَةَ لكه كله چې اوسپنه بار كړی.حالانكه د غنمو شرط وو.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه كټه د زين د جنس څخې نه ده. خكه چې كټه د بوج اوچتولو لپاره او زين د سوريدلو لپاره وی.نود غير جنس په وجه به ضامن وی.اود څاروی په شا باندې د كټې خوروالي د زين نه زيات وی.

## د معين لارې نه علاوه په بله لاره د قلی د بوج اوړلو په صورت كښې د ضمان حكم

قَالَ: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَ حَمَّالًا لِيَحْمِلَ لَهُ طَعَامًا فِي طَرِيقِ كَذَا) كه په اجاره باندې ئې واخستلو بوج اوچتونكې، چې دده غله اوچته كړی.په فلانئ لاره د فلانی مقامه پورې. فَأَخَذَ فِي طَرِيقٍ غَيْرِهِ يَسْلُكُهُ النَّاسُ نو بوج اوچتونكی ددې نه علاوه بله لاره اختياره كړله.چه په هغې خلګ ځی. فَهَلَكَ الْمَتَاعُ نو سامان ضائع شو. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ، نو په ده باندې ضمان نشته. (وَإِنْ بَلَغَ فَلَهُ الْأَجْرُ) كه ده اورسولو.نو دده لپاره به مزدوری وی. وَهٰذَا إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ الطَّرِيقَيْنِ تَفَاوُتٌ، ادا هغه وخت دی.كله چې په دواړو لارو كي كمې زياتې نه وی. لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ التَّقْيِيدَ غَيْرُ مُفِيدٍ، خكه چې په دې صورت كي قيد لګول ګټور نه دی. أَمَّا إِذَا كَانَ تَفَاوُتٌ او كه كمې زياتې وی. يَضْمَنُ لِصِحَّةِ التَّقْيِيدِ نو ضامن به وی.د تقييد د صحت په وجه. فَإِنَّ التَّقْيِيدَ مُفِيدٌ إِلَّا أَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ التَّفَاوُتِ خكه چې دا قيد لګول ګټور دی.خو ښكاره عدم تفاوت دې. إِذَا كَانَ طَرِيقًا يَسْلُكُهُ النَّاسُ كله چې دا لاره داسې وی.چه خلګ په دې كي ځی. فَلَمْ يُفَصِّلْ په دې وجه حكم كي تفصيل نشته.

**حل اللغة:** **حمال:** بوج اوچتونكې، مزدور، قلی ، **يسلكه (ن) سلوكا:** په لاره تلل، **متاع:** د سپينو او سرو زرو نه علاوه د ژوند سامان، **بلغ تبليغا:** رسول، **بر:** اوچه مځكه ، صحراء، بيابان، دشته، **انتشار** خورول، **عروق:** د عرق جمع ده، رګ.

**تشريح:** يوكس يو بوج اوچتونكې ددې لپاره اجرت باندې واخستلو.چه هغه دا غله په فلانئ لاره فلانی مقامه پورې اورسوی.بوج اوچتونكی ددې مقرر لارې نه علاوه بله لاره اختيار كړله.چه په دې لاره هم د خلګو تلل

راتګ جاري وي.او حال داچه په دواړو لارو کي هيڅ کمي زياتي هم نشته.بيا هم غله ضائع شوه.نو په بوج اوچتونکي باندې به هيڅ ضمان نه وي.اوکه ده غله اورسوله.نو هغه به د مزدورۍ مستحق وي.ځکه چې د کمي زياتي نه کيدلو په صورت کي د خاص لارې قيد لګول ګټور نه دی.اوکه په دواړو لارو کي کمي زياتي وي.يا په کومه لاره چې هغه تلي دي.په هغې باندې د خلګو تلل راتګ نه وي.نو ضامن به وي.ځکه چې په دې صورت کي د لارې قيد لګول ګټور او صحيح دی.نو بوج اوچتونکی د مستاجر ه حکم خلاف اوکړو.نو ضامن به وي.

(وَإِنْ كَانَ طَرِيقًا لَا يَسْلُكُهُ النَّاسُ او که لاره داسې وي.چه خلګ په دې کي نه ځي. فَهَلَكَ و سامان ضائع شي. ضَمِنَ) نو ضامن به وي. لِأَنَّهُ صَحَّ التَّقْيِيدُ ځکه چې قيد لګول صحيح شو. فَصَارَ مُخَالِفًا نو بوج اوچتونکي مخالف شو. (وَإِنْ بَلَغَ او که ده اورسولو، فَلَهُ الْأَجْرُ) نو دده لپاره به اجرت وي. لِأَنَّهُ ارْتَفَعَ الْخِلَافُ مَعْنًى، وَإِنْ بَقِيَ صُورَةً. ځکه چې د معنی په اعتبار سره اختلاف ختم شو.اګرچه صورتاً پاته دی. قَالَ: (وَإِنْ حَمَلَهُ فِي الْبَحْرِ فِيمَا يَحْمِلُهُ النَّاسُ فِي الْبَرِّ او که دا ئې په درياب کي راوړلو.حالانکه دا خلګ په اوچه لاره راوړي. ضَمِنَ) لِفُحْشِ التَّفَاوُتِ بَيْنَ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ نو ضامن به وي.په اوچه او لنده کي د زيات تفاوت په وجه. (وَإِنْ بَلَغَ او که ده اورسولو. فَلَهُ الْأَجْرُ) لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ نو دده لپاره به اجرت وي.د مقصود حاصليدلو، وَارْتِفَاعِ الْخِلَافِ مَعْنًى.اود معنی په طور د خلاف اوچتيدلو په وجه.

تشريح: د ترجمې نه مطلب ښکاره دی

## په مځکه د متعين څيز کرلو د قيد لګولو حکم

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا چا چې په اجاره باندې مځکه واخستله. لِيَزْرَعَهَا حِنْطَةً چې هغه په دې کي غنم اوکري. فَزَرَعَهَا رُطَبَةً بيا ئې په دې کي د رطبه (ګندنا، باتنګڼ وغيره بناء بر اختلاف لغت)ګيا کرونده اوکړله. ضَمِنَ مَا نَقَصَهَا) نو ضامن به وي.د هغه نقصان کوم چې زمکې ته رسيدلې دي. لِأَنَّ الرِّطَابَ أَضَرُّ بِالْأَرْضِ مِنَ الْحِنْطَةِ ځکه چې رطاب شيان زمکې ته د غنمو نه زيات نقصان رسوي. لِانْتِشَارِ عُرُوقِهَا فِيهَا په مځکه کي ددې د جړو خوريدلو، وَكَثْرَةِ الْحَاجَةِ إِلَى سَقْيِهَا او ددې د اوبه خور د زيات اړتيا کيدلو په وجه. فَكَانَ خِلَافًا إِلَى شَرٍّ نو دا بدئ اړخ ته مخالفت شو. فَيَضْمَنُ مَا نَقَصَهَا ځکه به د نقصان ضامن وي. (وَلَا أَجْرَ لَهُ) او مالك ته به د زمکې کرايه نه ملاويږي. لِأَنَّهُ غَاصِبٌ لِلْأَرْضِ عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ ځکه چې مستاجر د تيرشوی تقرير موافق د زمکې غصب کونکی دی.

تشريح: مسئله داده.چه يوکس مځکه په اجاره باندې واخستله.اود غنمو کرلو شرط ئې اولګولو.بيا ئې په دې کي رطبه (مثلاً ګندنا) اوکرله.نو په دې سره چې زمکې ته څه نقصان اورسيدلو.د هغې به ضامن وي.وجه داده.چه کومو څيزونو ته رطبه وئيلې شي.هغه زمکې ته د غنمو نه زيات نقصان رسوي.ځکه چې د رطاب جرړې په مځکه کي خوريږي.او دې ته د اوبو ور کاوه اړتيا زيات وي.نو هرکله چې ده د غنمو کرلو شرط اوکړو.اود غنمو نه علاوه ئې بل څه اوکرل.نو په دې کي مخالفت کونکی شو.اودا مخالفت هم داسې دی.چه په دې سره د زمکې مالك ته د نيکئ په ځائې بدی رسيدلې ده.نو ده چې کوم څه نقصان رسولی دی.د هغې به ضامن وي.اود زمکې مالك ته به د زمکې کرايه نه ملاويږي.ځکه چې مستاجر کروندې سره په نقصان ده مخالفت کولوکي په عقد اجاره باندې پاتې نشو.بلکه غاصب شو.(ځکه چې اجاره خود غنمو لپاره وه) او غاصب باندې اجرت نه وي.بلکه تاوان لازميږي.

سوال: د غاصب کيدلو خبره خو په ښکاره صحيح نه ده.ځکه چې دلته کي معقود عليه د کروندې په بعه د زمکې منفعت دی.او مستاجر دا منفعت د رطبه کروندې په صورت کي حاصل کړې دی.صرف



دومره خبره ده.چه ده منفعت د مستحق اندازې نه زيات حاصل کړې دی.نو په ده باندې اجرت واجبيدل پکار دی ؟

ځواب: زمکې ته چې د غنمو په کروندې سره څه نقصان هم رسيدلې دی.هغه د رطبه کروندې په نسبت کم وي.ځکه چې غنم هرکار کرلې کيږي.او رطبه هرکال نه کرلې کيږي.بلکه ددې جرړې هرکال پخپله راخيژي.تر هغه وخته پورې ترکومه پورې چې ددې جرړې خرابې نشي.نو دلته کي جنس مختلف شو.او دجنس په اختلاف سره چې ده په څه باندې عقد کړې وو.د هغې پوره کونکې نشو.بيا د زمکې نقصان واجبول ضروری دی.ځکه به مستاجر خامخا ضامن وي. ﴿و الأجر مع الضمان لا يجتمعان﴾.

## د حکم خلاف بل څيز جوړولو کښې د ضمان حکم

قَالَ: (وَمَنْ دَفَعَ إِلَى خَيَّاطٍ ثَوْبًا يوکس درزی ته کپړه ورکړله. لِيَخِيطَهُ قَمِيصًا بِدِرْهَمٍ چې ددې نه کميص اوګنډي.د يو درهم په عوض. فَخَاطَهُ قَبَاءً هغه قباء (کوټ) اوګنډلو. فَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ الثَّوْبِ نو مالك ته اختيار دی.که غواړي.د کپړې د قيمت تاوان دې واخلي. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْقَبَاءَ او که غواړي.قباء دې واخلي. وَأَعْطَاهُ أَجْرَ مِثْلِهِ ددې اجرمثل دې ورکړي. لَا يُجَاوِزُ بِهِ دِرْهَمًا) چې دا به د يو درهم نه زيات نه وي.

تشريح: يوکس يو درزی ته کپړه ورکړله.چه هغه د يو درهم په عوض کي ددې کميص اوګنډي.نو درزی ددې کپړې نه قباء اوګنډله.نود کپړې مالك ته اختيار دی.که غواړي.درزی نه دې د خپلې کپړې د قيمت تاوان واخلي.(په دې صورت کي به درزی ددې قباء مالك شي).او که غواړي قباء دې واخلي.او ددې اجر مثل دې ورکړي.خو اجر مثل به د يو درهم نه زيات نه وي.

قِيلَ: مَعْنَاهُ الْقُرْطَقُ الَّذِي هُوَ ذُو طَاقٍ وَاحِدٍ اوئيلې شوي دي.چه د قباء معنی هغه کرته ده.چه هغه د يو تا (استر) وي. لِأَنَّهُ يُسْتَعْمَلُ اسْتِعْمَالَ الْقَمِيصِ ځکه چې دا د کميص په طور استعماليږي. وَقِيلَ هُوَ مُجْرًى عَلَى إِطْلَاقِهِ او وئيلې شوي دي.چه دا پخپل اطلاق باندې جاری دی. لِأَنَّهُمَا يَتَقَارَبَانِ فِي الْمَنْفَعَةِ. ځکه چې قباء او کميص دواړه په منفعت کي نږدې نږدې دی.

تشريح: قباء (کوټ) د يو تاه (استر) هم وي.اود ډبل تاه هم وي.دلته کي ددې نه څه مراد دی؟ بعض مشائخو وئيلې دي.چه د قباء نه مراد هغه کرته ده.کومه چې د يو تاه وي.ځکه چې ددې استعمال د قباء پشان وي.لکه چې ترکی خلګ دا د کميص په ځائې اغوندي.او بعض مشائخ فرمائي.چه دا لفظ پخپل اطلاق باندې جاری دی.ځکه چې قباء او کميص کي د هر يو منفعت د بدن پټولو او د يخنئ ګرمئ نه بچ کاوه کي نږدې نږدې دي. ﴿و لكل واحد منهما كمان و ذيل و دخريص﴾.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دی. أَنَّهُ يُضَمِّنُهُ مِنْ غَيْرِ خِيَارٍ؛ چې مالك به تاوان اخلي.د اختيار نه بغير. لِأَنَّ الْقَبَاءَ خِلَافُ جِنْسِ الْقَمِيصِ. ځکه چې قباء د جنس قميص نه خلاف ده.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادی.چه مالك ته د تاوان نه علاوه بل هيڅ اختيار نشته.ځکه چې قباء د جنس کميص نه خلاف دی.اود داسې مخالفت په وجه درزی غاصب شو.نو مالك ته صرف د تاوان اخستلو اختيار شو.دا د امام صاحب رحمه الله نه حسن رحمه الله روايت دی.اود آئمه ثلاثه رحمهم الله د قول قياس هم دادی.

د لفظ قباء تحقيق:قباء کي صرف دوې (دوه) تهه (استره) وي.او کله کله ددې په منځ کي مالوچ (يا بکرم) هم وي.او دا په ښکاره د کميص خلاف دی.لکه چې د نوادر په روايت کي دی.خو په ظاهرالرواية کي قباء د جنس کميص خلاف نه دی.ګنی د تاوان نه علاوه به د بل څه اختيار نه وو.په دې وجه بعض مشائخو د قباء نه کرته مراد اخستې ده.ځکه که دا د مخې نه اوشلولې شي.نو ددې نه قباء جوړيږي.اود نفع اخستلو په لحاظ سره هم ګويا دواړه هم جنس دی.ځکه چې قباء او کميص کي هريو کي لستوڼی ، او لمنه وي.

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ قَمِيصٌ مِنْ وَجْهٍ او د ظاهر روايت وجه دا ده چې دا په يو جهت سره قميص دې لِأَنَّهُ يُشَدُّ وَسَطُهُ، ځکه چې دا په منځ کې تړلې شي. فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ يَكُونُ مُخَالِفًا، لِأَنَّ الْقَمِيصَ لَا يُشَدُّ وَيُنْتَفَعُ بِهِ انْتِفَاعُ الْقَمِيصِ او د قميص پشان نفع اخستې شي. فَجَاءَتِ الْمُوَافَقَةُ وَالْمُخَالَفَةُ نو موافقت او مخالفت دواړه شو. فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّ الْجِهَتَيْنِ شَاءَ نو دواړو طرفونو کې چې کوم اړخ ته غواړي. مائل دې شي. إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ لِقُصُورِ جِهَةِ الْمُوَافَقَةِ، خو اجر مثل به واجب وي. د موافقت په اړخ کې د قصور په وجه. وَلَا يُجَاوِزُ بِهِ الدِّرْهَمَ الْمُسَمَّى او بيان شوې به د يو درهم نه زياتيږي. كَمَا هُوَ الْحُكْمُ فِي سَائِرِ الْإِجَارَاتِ الْفَاسِدَةِ عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ فِي بَابِهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى. لکه چې هم دا حکم دې په نورو اجاره فاسده کې. لکه چې موږ به بيان کړو. ددې په باب کې انشاء الله تعالى.

**تشريح:** د ظاهر الرواية وجه داده. چه قباء په يو لحاظ سره د كميص خلاف ده. او په يو اعتبار سره كميص دې. په دې معنى چې دا په منځ کې تړلې شي. او د كميص پشان نفع اخستې شي. نو په قباء جوړولو کې موافقت او مخالفت دواړه اوموندې شو. نو مالك ته اختيار دې. که هغه مخالفت اوګنړي. نود قيمت تاوان دې واخلى. او که موافقت اوګنړي. نو قباء دې واخلى. او اجر مثل دې ورکړي. ځکه چې موافقت کې څه معمولى کمې دې.

وَلَوْ خَاطَهُ سَرَاوِيلَ او که ددې نه ئې پاجامه (پرتوګ) جوړ کړو. وَقَدْ أَمَرَ بِالْقَبَاءِ حالانکه ده ته ئې د قباء حکم ورکړې وو. قِيلَ يَضْمَنُ مِنْ غَيْرِ خِيَارٍ لِلتَّفَاوُتِ فِي الْمَنْفَعَةِ نو ونيلې شوى دى. چه تاوان به اخلى. د اختيار نه بغير. په نفع کې دکمى زياتى کيدلو په وجه. وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُخَيَّرُ لِلِاتِّحَادِ فِي أَصْلِ الْمَنْفَعَةِ، او زيات صحيح داده. چه ده ته به اختيار ورکولې شي. اصل منفعت کې د اتحاد په وجه. وَصَارَ كَمَا إِذَا أَمَرَ بِضَرْبِ طَسْتٍ مِنْ شَبَّةٍ او دا داسې شوه. لکه چې د تانبې د تهال (خانك) جوړولو حکم ئې ورکړې وو. فَضَرَبَ مِنْهُ كُوزًا، او هغه لوټه جوړه کړله. فَإِنَّهُ يُخَيَّرُ كَذَا هٰذَا، چې مالك ته اختيار ورکولې شي. دغه ډول دلته کې هم دى. وَاللَّهُ أَعْلَمُ

**تشريح:** که درزى ددې کپړې نه پانجامه (يعنى پرتوګ) اوګنډلو. حالانکه مالك هغه ته د قباء ګنډلو لپاره ونيلى وو. نود بعضو په قول مالك دده نه صرف تاوان اخستې شي. د کپړې اخستلو او مزدورئ ور کاوه اختيار نشته. ځکه چې د قباء او پانجامه په منفعت کې تفاوت دې. خود زياته صحيح داده. چه مالك ته دواړه اختياره دى. که غواړي. ضمان دې واخلى. او که غواړي. کپړه دې واخلى. اجر مثل دې ورکړي. ځکه چې اصل منفعت يعنى جامې کيدلو او بدن پټولو کې دواړه برابر دى. نودا داسې شوه. لکه چې لوخى جوړونکى ته د تانبې نه د تهال (خانك) جوړولو لپاره اووانى. او هغه لوټه جوړه کړى. نو مالك ته دواړه اختياره وى. دغه ډول په دې مسئله کې هم دى.

## بَابُ الْإِجَارَةِ الْفَاسِدَةِ

ژباړه: (دا) باب د اجاره فاسده (په بيان کې) دې.

### د اجاره فاسديدلو شرطونه

قَالَ: (الْإِجَارَةُ تُفْسِدُهَا الشُّرُوطُ كَمَا تُفْسِدُ الْبَيْعَ) شرطونه اجاره فاسده وى. لکه څنګه چې بيع فاسده وى. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَتِهِ، ځکه چې اجاره په منزله د بيع ده. أَلَا تَرَى أَنَّهُ عَقْدٌ يُقَالُ وَيُفْسَخُ آيا نه ګورې چې دا هم اقاله او فسخ کولې شي. (وَالْوَاجِبُ فِي الْإِجَارَةِ الْفَاسِدَةِ أَجْرُ الْمِثْلِ) و په اجاره فاسده کې اجر مثل واجبيږي. (لَا يُجَاوِزُ بِهِ الْمُسَمَّى) چې دا د بيان شوى مقدار نه نه زياتيږي.

**تشريح:** اجاره چونکه په منزله د بيع ده. په دې وجه کومو شرطونو سره چې بيع فاسديږي. هغې سره اجاره هم فاسديږي. لکه شرط لګول، چې کور اوغورزيږي. بيا به هم کرايه نه ساقطيږي. يا د جرندې اوبه بندې شي بيا به هم اجرت لازم وى. دغه ډول هغه شئ په کوم ئې چې اجاره کړې ده. يا د اجرت يا مودې يا د عمل



مجهول کيدل وغيره. دې ټولو څيزونو سره اجاره فاسديږي. او اجرت مثل به واجب وي. خود مسمى څخه به زيات نشي ورکولې.

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمائى. يَجِبُ بَالِغًا مَا بَلَغَ اعْتِبَارًا بِبَيْعِ الْأَعْيَانِ. چې کوم ځائې پورې چې اورسيږي په بيع اعيان باندې قياس کولو سره. وَلَنَا موږ دليل دادې. أَنَّ الْمَنَافِعَ لَا تَتَقَوَّمُ بِنَفْسِهَا چې منافع پخپله قيمتى نه وى. بَلْ بِالْعَقْدِ لِحَاجَةِ النَّاسِ بلکه د عقد په ذريعه (قيمتى) کيږي. د خلګو د اړتيا په وجه. فَيُكْتَفَى بِالضَّرُورَةِ فِي الصَّحِيحِ مِنْهَا نو په عقد صحيح کې به اړتيا باندې اکتفاء کولې شي. إِلَّا أَنَّ الْفَاسِدَ تَبَعٌ لَهُ، او فاسده چونکه د صحيح تابع ده. وَيُعْتَبَرُ مَا يُجْعَلُ بَدَلًا فِي الصَّحِيحِ عَادَةً، لٰكِنَّهُمَا إِذَا اتَّفَقَا عَلَى مِقْدَارٍ فِي الْفَاسِدِ په اجاره صحيحه کې چې کوم شئ عادتاً بدل ګرځولې شي. هم هغه په فاسد کې معتبر وى. خو کله چې متعاقدين متفق شو. په يو مقدار باندې اجاره فاسده کې. فَقَدْ أَسْقَطَا الزِّيَادَةَ، نو دوى زياتوالې ساقط کړو. وَإِذَا نَقَصَ أَجْرُ الْمِثْلِ او کله چې اجرمثل کم وى. لَمْ يَجِبْ زِيَادَةُ الْمُسَمَّى لِفَسَادِ التَّسْمِيَةِ، نو بيان شوې اجرت چې کوم زياتى دې. هغه به واجب نه وى. د مقرر شوى د فساد په وجه.

**تشريح:** د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نيز به اجرت مثل ورکولې شي. اګرچه مسمى زيات وى. دا حضرات دا په بيع فاسد باندې قياس کوى. چه په دې کې د مبيع قيمت واجبيږي که هر څومره وى. موږ وايو. چه منافع پخپله متقوم نه وى. بلکه د عقد په وجه متقوم کيږي. او په عقد کې پخپله متعاقدينو اجر مسمى باندې اتفاق کاوه سره زياتوالې ساقط کړو. په دې وجه به زياتى مقدار ساقط الاعتبار وى.

بِخِلَافِ الْبَيْعِ، په خلاف د بيع، لِأَنَّ الْعَيْنَ مُتَقَوِّمَةٌ فِي نَفْسِهَا ځکه چې عين پخپله قيمتى دې. وَهِيَ الْمُوجِبُ الْأَصْلِيُّ، او هم دا اصل موجب دې. فَإِنْ صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ نو که تسميه صحيح وى. انْتَقَلَ عَنْهُ وَإِلَّا فَلَا نو ثمن اړخ ته به منتقل کيږي. ګنى نه به (منتقل) کيږي.

**تشريح:** امام زفر او امام شافعي رحمهما الله چې اجاره په بيع فاسد باندې قياس کړې ده. ددې ځواب دادې. چه دا صحيح نه ده. ځکه چې بيع او اجاره کې توپير دې. او هغه داچه بيع کې مال عين مبيع وى. او مال عين پخپله قيمتى شئ دې. نود بيع اصل مقتضا داده. چه هم دا قيمت واجب وى. خو که متعاقدينو د قيمت نه علاوه د ثمن په څه مقدار باندې اتفاق اوکړو. نود قيمت څخه به منتقل کيږي. او ثمن به واجب وى. په دې شرط چې عقد صحيح وى. که عقد فاسد وى. نو هم دا اصلى قيمت به واجب وى. په خلاف د اجارهٔ، چې په دې کې منافع خرڅولې شى. چه دا پخپله قيمتى نه وى. بلکه د خلګو د اړتيا په وجه شريعت دا قيمتى کړې دى. نو که متعاقدينو څه صحيح مقدار مقرر کړې وى. نو هم هغه به واجب وى. اوکه د دواړو څه صحيح فيصله شوې خبره نه وى. نو ددوى مقرر شوې مقدار به معتبر نه وى. بلکه چې کوم قيمت وى. هم هغه به لازم وى. بيا په کوم مقدار چې دوى اتفاق کړې دې. هغې باندې رضامندى موجود ده. نو که عقد صحيح وو. نو هم په دغه اندازه به ملاويدلو. او فاسد اجاره چونکه په صحيح باندې قياس دې. نو په دې کې به هم ددوى د رضامندئ نه زيات نه ملاويږي. بهرحال که اجر مثل کم وى. نو هم دا به ملاويږي. ګنى د مقرر شوى مقدار څخه به زيات نه ملاويږي.

### د کور د اجارهٔ احکام

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَارًا كُلَّ شَهْرٍ بِدِرْهَمٍ) يو کس په کرايه باندې کور واخستلو. هره مياشت په يو درهم باندې. (فَالْعَقْدُ صَحِيحٌ فِي شَهْرٍ وَاحِدٍ) نو عقد صرف به يو مياشت کې صحيح وى. (فَاسِدٌ فِي بَقِيَّةِ الشُّهُورِ) په پاتې مياشتو کې به فاسد وى. (إِلَّا أَنْ يُسَمِّيَ جُمْلَةَ شُهُورٍ مَعْلُومَةٍ)، البته که ټولې مياشتې معين اوښائى.

**تشريح:** يو کس يو کور د يو درهم ماهوار کرايه باندې واخستلو. نو اجاره به صرف يو مياشت کې صحيح

وي.او په پاته میاشتو کي به فاسده وي.البته کي دي پوره میاشتي بیان کړي.مثلاً داسي اووائي.چه د لسو میاشتو لپاره هره میاشت د یو درهم په عوض اخلم.نو په ټولو کي به صحیح وي.ځکه چي،پوره موده معلومه شوه.د مودي په اړه کي امام شافعي رحمه الله هم دا فرمائي.او شیخ اصطخری او امام احمد رحمه الله هم دا اختیار کړي دي.خود امام شافعي رحمه الله اصح قول دادي.چه اجاره باطل ده.د امام مالك رحمه الله په نیز اجاره صحیح ده.هره میاشت تیریدلو باندي به د اجرت مستحق وي.

لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ كَلِمَةَ كُلٍّ إِذَا دَخَلَتْ فِيمَا لَا نِهَايَةَ لَهُ ځکه اصل دا دي.چه کلمه د،،کل،،کله په داسي شئ باندي داخله شي.چه د هغي هیڅ انتهاء معلومه نه وي. تَنْصَرِفُ إِلَى الْوَاحِدِ لِتَعَذُّرِ الْعَمَلِ بِالْعُمُومِ نو دا صرف یو اړخ ته منصرف کیږي.عموم باندي د عمل مشکل کیدلو په وجه. فَكَانَ الشَّهْرُ الْوَاحِدُ مَعْلُومًا او یوه میاشت معلومه ده. فَصَحَّ الْعَقْدُ فِيهِ نو په دي کي عقد صحیح شو. وَإِذَا تَمَّ کله چي دا میاشت پوره شي. كَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَنْقُضَ الْإِجَارَةَ لِانْتِهَاءِ الْعَقْدِ الصَّحِيحِ نو په دوی کي به هر یو ته دا اختیار وي.چه اجاره ماته کړي.د عقد صحیح پوره کیدلو په وجه. (وَلَوْ سَمَّى جُمْلَةَ شُهُورٍ مَعْلُومَةٍ جَازَ) بیا که ده ټولي میاشتي معین اوخودلي.نو عقد به جائز وي. لِأَنَّ الْمُدَّةَ صَارَتْ مَعْلُومَةً. ځکه چي پوره موده معلومه شوه.

**تشریح:** صرف یوه میاشت کي د اجاره صحیح کیدلو وجه داده.چه کله کلمه د،،کل،، په داسي څیزونو داخله وي.چه دهغي هیڅ انتهاء نه وي.نو ددي په عموم باندي د عمل متعذر کیدلو په وجه فرد واحد اړخ ته ګرځولي شي.او یوه میاشت معلومه ده.نو اجاره به په یوه میاشت کي صحیح وي.بیا د کومي میاشتي په پیل کي چي مستاجر لړ شان ایساریږي.هغي کي به هم اجاره صحیح وي.تردي چي د میاشتي ختمیدلو نه وړاندي موجر، مستاجر ددي کور نه نشي ویستلي.ددي دصحیح کیدلو وجه داده.چه د ایساریدلو په وجه د دواړو رضامندي اوموندي شوه.

قَالَ (وَإِنْ سَكَنَ سَاعَةً مِنَ الشَّهْرِ الثَّانِي بیا که ایسار شو.مستاجر په دویمه میاشت کي هم یو ساعت (ګهنته) صَحَّ الْعَقْدُ فِيهِ نو په دي کي به هم عقد صحیح وي. وَلَمْ يَكُنْ لِلْمُؤَجِّرِ أَنْ يُخْرِجَهُ إِلَى أَنْ يَنْقَضِيَ؛ او س موجر دي نشي ویستلي.تردي چي میاشت تیره شي. وَكَذَلِكَ كُلُّ شَهْرٍ سَكَنَ فِي أَوَّلِهِ سَاعَةً) دغه ډول د هر هغه میاشتي حکم دي. چي دهغي په پیل کي مستاجر رهائش اختیار کړي. لِأَنَّهُ تَمَّ الْعَقْدُ بِتَرَاضِيهِمَا بِالسُّكْنَى فِي الشَّهْرِ الثَّانِي، ځکه چي دویمه میاشته کي هم د دواړو په رضامندئ سره عقد پوره شو.

**تشریح:** د ترجمي نه مطلب ښکاره دي

إِلَّا أَنَّ الَّذِي ذَكَرَهُ فِي الْكِتَابِ هُوَ الْقِيَاسُ، خو په کتاب کي چي کوم ذکر شوی دی.قیاس هم دادي. وَقَدْ مَالَ إِلَيْهِ بَعْضُ الْمَشَايِخِ، او هم دي اړخ ته بعض مشائخو میلان کړي دي. وَظَاهِرُ الرِّوَايَةِ أَنْ يَبْقَى الْخِيَارُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي اللَّيْلَةِ الْأُولَى مِنَ الشَّهْرِ الثَّانِي وَيَوْمِهَا او ظاهر الروایت دادي.چه د دویمي میاشتي ړومبئ شپه او ړومبئ ورځ کي به دوی کي هر یو ته د فسخ اختیار وي. لِأَنَّ فِي اعْتِبَارِ الْأَوَّلِ بَعْضَ الْحَرَجِ ځکه چي د یو ساعت (ګهنته) اعتبار کاوه کي لږ حرج دي.

**تشریح:** ابو الحسین قدوری رحمه الله چي په مختصر کي لفظ د ساعة (یوه ګهړئ) ذکر کړي ده.هم دا قیاس دي.او بعض متاخرین مشائخ دي اړخ ته مائل دی.ظاهر الروایة دادي.چه د دویمي میاشتي په اوله شپه او ورځ کي متعاقدینو کي هر یو ته به د اجاري فسخ کاوه اختیار وي.ځکه چي د یوي ګهړئ (ګهنتي) اعتبار کاوه کي حرج دي.

قَالَ: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَ دَارًا سَنَةً بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ کله نې چي کرایه باندي کور واخستلو.د پوره کال دپاره.په لس درهم کي. جَازَ وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ قِسْطَ كُلِّ شَهْرٍ مِنَ الْأُجْرَةِ) نو دا جائز ده.اګرچه د ماهانه اجرت قسط بیان نکړي.لِأَنَّ



الْمُدَّةَ مَعْلُومَةٌ بِدُونِ التَّقْسِيمِ ځکه چي پوره موده د ویش نه بغیر معلومه ده. فَصَارَ كَإِجَارَةِ شَهْرٍ وَاحِدٍ نو د یو میاشت د اجاري پشان شو. فَإِنَّهُ جَائِزٌ وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ قِسْطَ كُلِّ يَوْمٍ، چي دا جائز ده.اګرچه د هر ورځي قسط نې نه وي بیان کړي.

**تشریح:** دغه ډول که د پوره کال لپاره کور په کرایه باندي واخلی.اود پوره کال کرایه ذکر کړي.د هري میاشتي کرایه بیان نکړي،بیا به هم اجاره صحیح وي.ځکه چي د هري میاشتي قسط بیانولو نه بغیر هم پوره موده معلومه شوه.نودا داسي شوه.لکه چي د یو میاشت لپاره کور کرایه باندي واخلی.اود هر ورځي کرایه بیان نکړي.نودا جائز دی.

## د اجارهٔ د مودي ابتداء به د کوم وخت نه کیږي؟

ثُمَّ يُعْتَبَرُ ابْتِدَاءُ الْمُدَّةِ مِمَّا سَمَّى بیا به د مودي ابتداء هغه وخت نه معتبر وي.کومه چي دوی بیان کړي ده. وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ شَيْئًا اوکه هیڅ نې بیان نکړله. فَهُوَ مِنَ الْوَقْتِ الَّذِي اسْتَأْجَرَهُ نو دهغه وخت نه (به معتبر وي) د کله نه نې چي اجاره باندي اخستي دي. لِأَنَّ الْأَوْقَاتَ كُلَّهَا فِي حَقِّ الْإِجَارَةِ عَلَى السَّوَاءِ ځکه چي واړه وختونه د اجارهٔ په حق کي برابر دی. فَأَشْبَهَ الْيَمِينَ، بِخِلَافِ الصَّوْمِ، نود قسم مشابه شو.په خلاف د روژي. لِأَنَّ اللَّيَالِيَ لَيْسَتْ بِمَحَلٍّ لَهُ ځکه چي شپې د روژي محل نه دی.

**تشریح:** د اجاري د مودي ابتداء به دهغه وخت نه شمارلې کیږي.کوم وخت چي موجر او مستاجر بیان کړي دي.او که دوی هیڅ وخت نه وی بیان کړي.نود مودي ابتداء به د هغه وخت نه شمارلي کیږي.د کوم وخت نه نې چي اجاره باندي اخستي دي.ځکه چي د اجاري په حق کي واړه وختونه برابر دی. نو دا د قسم مشابه شو.مثلاً قسم نې اوخوړلو.چه فلانی سره به یوه میاشت خبري نه کوم.نود کوم وخت نه نې چي قسم خوړلي دي.میاشت به د هغه وخت نه شمارلې کیږي.په خلاف د روژي،که یوکس نذر اوکړو .چه ما باندي د یومیاشت روژي واجب دی.نو متصل وریسې میاشت ضروری نه ده.ځکه چي د روژي په حق کي واړه وختونه برابر نه وی.لکه چي شپې د روژو محل نه دي.

(ثُمَّ إِنْ كَانَ الْعَقْدُ حِينَ يُهِلُّ الْهِلَالُ بیا که عقد هغه وخت اوشو.چه سپوږمئ راوتلي ده. فَشُهُورُ السَّنَةِ كُلُّهَا بِالْأَهِلَّةِ) نود کال ټولي میاشتي به د سپوږمئ نه شمارلي کیږي. لِأَنَّهَا هِيَ الْأَصْلُ ځکه چي هم دا اصل دي. (وَإِنْ كَانَ فِي أَثْنَاءِ الشَّهْرِ او که د میاشتي په منځ کي وي. فَالْكُلُّ بِالْأَيَّامِ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو پوره شمیر به ورځو سره کیږي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ. او هم دا یو روایت دي.د امام ابویوسف رحمه الله نه. وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ اود امام محمد رحمه الله په نیز وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او دا دوهم روایت دي. د امام ابویوسف رحمه الله نه. الْأَوَّلُ بِالْأَيَّامِ وَالْبَاقِي بِالْأَهِلَّةِ؛ چي ړومبئ میاشت به ورځو سره (شمارلي) کیږي.او پاته به سپوږمئ سره. لِأَنَّ الْأَيَّامَ يُصَارُ إِلَيْهَا ضَرُورَةً، ځکه چي ورځو اړخ ته رجوع د اړتیا په وجه کیږي. وَالضَّرُورَةُ فِي الْأَوَّلِ مِنْهَا. او اړتیا صرف په ړومبئ میاشت کي دي. وَلَهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادي. أَنَّهُ مَتَى تَمَّ الْأَوَّلُ بِالْأَيَّامِ چي هرکله ړومبئ میاشت ورځو سره پوره شوه. ابْتَدَأَ الثَّانِي بِالْأَيَّامِ ضَرُورَةً نو دویمه میاشت به هم لازمي طور باندي ورځو سره (شمارلي) کیږي. وَهَكَذَا إِلَى آخِرِ السَّنَةِ، نو هم دغه ډول آخر کاله پوري. وَنَظِيرُهُ الْعِدَّةُ وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ او ددي مثال عدت دي.چه دا په کتاب الطلاق کي تیر شوي دي.

**تشریح:** بیا که عقد اجاره د میاشت په ړومبئ شپه واقع شوي وي.نود کال د ټولو میاشتو شمار به د سپوږمئ نه کیږي.ځکه چي میاشتو کي اصل اعتبار د سپوږمئ وی.قال الله تعالی ﴿وَمَنْ أَحْيَاهَا فَكَأَنَّمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا﴾ او ایام د اهلة بدل دي. ﴿الا ترى إلى قوله ﷺ صوموا لرؤيته و افطروا لرؤيته فإن غم عليكم الهلال فاكملوا عدة شعبان ثلاثين يوما﴾ او که عقد اجاره د میاشتي د پیل شپې نه نه وي.بلکه په منځ کي د یو تاریخ نه واقع شوي وي.مثلاً

په لسم يا دولسم تاريخ كي، نود هرې مياشتې اعتبار به د دواړو په لحاظ سره وي.يعني هر ديرش ورځې روسته به يوه مياشت وي.دا د امام صاحب رحمه الله په نيز د امام ابويوسف، او د امام احمد رحمه الله نه يو روايت، د امام ابويوسف او امام احمد رحمه الله نه دوهم روايت اود امام شافعي رحمه الله دوهم قول هم دادې.ځكه چې ورځو ارخ ته مراجعت د اړتيا په وجه دې.او اړتيا صرف په رومبۍ مياشت كي دې.امام صاحب رحمه الله دا فرمائي،چه كله رومبۍ مياشت ورځو سره پوره شي.نو د دويمې مياشتې ابتداء به هم ورځو سره كيږي. «و هكذا إلى آخر السنة»

## د حمام اود حجام د اجرت مسئله

قال: (ويجوز أخذ أجرة الحمام والحجام) جائز دی د حمام او ښكر لګونكی اجرت اخستل، أما الحمام فللتعارف في الناس.د حمام (اجرت اخستل) د خلګو د تعارف په وجه.

تشريح: په دې قول كي دوې (دوه) مسئلې دی.يو د حمام د اجرت د جواز، او بله د حجام د اجرت د جواز.نو رومبۍ يعنی د حمام په اړه كي د عالمانو اختلاف دې.ځكه چې د حمام په مذمت كي «الحمام بيت الشيطان،، الحمام شر بيت» وغيره حديثونه نقل دی.په دې وجه بعضو عالمانو د حمام اجرت حرام ګرځولې دې.او بعضو عالمانو په مردانه او زنانه حمام كي توپير كړې دې.نو سړو لپاره ئې حمام ته تلل جائز ګرځولی دی.اود ښځو لپاره ناجائز.ځكه چې ① ابوداؤد، ترمذی، او ابن ماجه د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت كړې دې. «أن رسول الله ﷺ نهى الرجال و النساء عن دخول الحمام ثم رخص للرجال أن يدخلوا في الميازر» نبی كريم ﷺ سړي او ښځې حمام ته د تللو نه منع اوفرمائيل.بيا ئې سړو ته د داخليدلو اجازت وركړو.په لنګ تړلو كي،، ② اود سنن ابوداؤد روايت دې. «دخل على عائشة رضي الله عنها نسوة من أهل الشام فقالت ممن أنتن؟ قلن من أهل الشام قالت لعلكن من الكورة التي تدخل نساءها الحمامات قلن نعم قالت أما اني سمعت رسول الله ﷺ يقول مامن إمرأة تخلع ثيابها في غير بيتها إلا هتكت ما بينها و بين الله» ،، حضرت عائشه رضي الله عنها له د ملك شام څه ښځې راغلې .حضرت عائشه رضي الله عنها پوښتنه اوكړو.د كوم ځائې يئ؟ هغوی اوونيل د ملك شام.حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل.چه شايد تاسو دهغه ځائې يئ.كوم ځائې چې ښځې حمام كي داخليږی.هغوی اوونيل.آؤ.حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائيل.خبردار، ما د نبی كريم ﷺ نه دا فرمان اوريدلې دې.چه كومې ښځې خپلې كپړې د خپل كور نه سوا بل ځائې اوباسی.هغوی خپله پرده شله وی.كومه چې دده او د الله ﷻ په منځ كي ده،،

خود عامو عالمانو په نيز صحيح داده.چه دواړه قسمه حمامونو كي هيڅ باك نشته.ځكه چې ښځو ته هم د حيض او نفاس وغيره نه د لامبلو (او غسل كولو) اړتيا راپيښيږی.پاتې شو مذمت نودا په دې وجه دې.چه بربنډ لامبی.كه پرده اوكړی.يا لنګ اوتړی.نو هيڅ باك نشته.لكه چې حافظ بزار او طبرانی د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعاً روايت كړې دې. «إحذروا بيتاً يقال له الحمام قالوا يا رسول الله ﷺ انه يذهب بالدرن و ينفع المريض قال فاستتر» بهرحال ذكر شوی روايات په دې دلالت كوی.چه پردې سره حمام ته تلل جائز دی.اودا ښكاره ده.چه كله حمام ته داخليږی.نو اجرت به وركول لازمی وی.نودا د حمام په اجرت باندې هم دلالت شو.اودا ثابته شوه.چه د كور او دوكان پشان د حمام په اجرت كی هم هيڅ باك نشته.

ولم تعتبر الجهالة لإجماع المسلمين. او جهالت معتبر نه دې.د مسلمانانو د اجماع په وجه.

تشريح: بعضو حضراتو وئيلی دی.چه په حمام كي څومره قدرې اوبه وغيره صفا كولې شی.او هلته څومره اندازې پورې قيام كولې شي.د هغې مقدار مجهول دې.نود عمل مجهول كيدلو په وجه به اجاره جائز نه وی.خواب علامه مرغينانی رحمه الله ددې ځواب وركوی.چه قياس ددې تقاضه كوی.خو چونكه په خلګو كي هم داسې مشهوره شوې ده.اود خلګو تلل راتګ د اجازت او منع كاوه نه بغير په دې جاری دې.په دې وجه قياسی دليل نه معتبر كيږی.ځكه چې قياس باندې عمل وراندې كيږی.او په دې باندې د مسلمانانو اجماع ده.دليل دا لاندې حديث دې.



قال: عليه الصلاة والسلام د نبی كريم ﷺ ارشاد دې. {ما رآه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن} (١) چه كوم مسلمانانو غوره اوګنړلو. هغه د الله تعالى په نيز هم غوره دې.

تشريح: دا حديث د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه موقوفاً نقل دې.چه ددې تخريج امام احمد او حافظ بزار رحمهما الله مسند كي او حاكم په مستدرك كي او بيهقی په مدخل كتاب كي كړې دې. «إن الله نظر في قلوب العباد فوجد قلوب أصحابه خير قلوب العباد فجعلهم و زراء نبيه يقاتلون على دينه فما رآه المسلمون حسناً فهو عند الله حسن و ما رأوه شيئاً فهو عند الله شيء» ،، الله تعالى د بنده ګانو په زړونو باندې نظر اوفرمائيلو.د محمد ﷺ د زړه نه پس.نود محمد ﷺ د اصحابو رضي الله عنهم زړونه ئې د نورو بنده ګانو د زړونو نه غوره اوموندل.نو دوی ئې د خپل پيغمبر وزيران جوړ كړل.چه دوی د هغه د دين لپاره جهاد كوی.نو كوم شئ چې مسلمانانو بهتر اوګنړلو.هغه د الله په نيز بهتر دې.او كوم شئ چې هغوی بد اوګنړلو.هغه د الله په نيز بد دې،،

د ابن الهادی رحمه الله بيان دې.چه دا حديث د حضرت انس رضي الله عنه نه مرفوعاً هم روايت شوې دې.خو ددې اسناد ساقط دې.نو موقوف ثابت دې.چه دې ته حاكم صحيح الاسناد وئيلی دی.او حافظ بن حجر رحمه الله په درايه كي ددې اسناد ته حسن وئيلی دی.د حاكم په روايت كي دا زيادت هم شته. «و قد رأى الصحابة جميعاً أن يستخلف أبوبكر رضي الله عنه» او ذكرشوې حديث ابوداؤد طيالسی رحمه الله په مسند كي، ابو نعيم په حليه كي ،بيهقی په كتاب الاعتقاد كي ،او حافظ طبرانی په معجم كي په طريق د «مسعودی عن عاصم عن أبي وائل عن عبدالله بن مسعود رضي الله عنه» روايت كړې دې.ددې اسناد هم د حسن نه كښته نه دی.بيا دا عمل چونكه د داسې كارونو ځنې دې.چه دې كي قياس او اجتهاد ته دخل نشته.ځكه چې دا د وحی د حكم نه بغير نشی معلوميدلې.په دې وجه دا حديث د مرفوع په حكم كي دې.

تنبيه: په مذكوره حديث،، ما رآه المسلمون يا ما رآه المؤمنون،، كي د مسليمن يا مؤمنين نه عموماً جنس مراد دې.يا استغراق يا معهود.اود اصولو نه معلومه ده.چه معهود مقدم وی.نو ددې نه خاص صحابه رضي الله عنهم مراد شو.د عبارت نه هم دا معلوميږی.اودا د درامی وغيره د ابن مسعود رضي الله عنه په بعضو رواياتو كي ددې خبرې صراحت دې.نود صحابو رضي الله عنهم د اجماع په دليل كيدلو باندې خود حديث نه دليل مكمل دې.پاتې شو عموماً د مسلمانانو د اتفاق او اجماع حجت كيدل،نو په دې باندې استدلال نشی پوره كيدلې.ددې نه علاوه د ټولو اجماع ثابت هم نه ده.ځكه چې د بعضو اكابرو اختلاف موجود دې.بيا دا خبره هم پته نه ده.چه د بعضو د كيدلو په وجه د صحابو رضي الله عنهم اجماع ممكن وه.او اوس ددې علم ناممكن دې.بهرحال د مذكوره حديث په ظاهر كي صرف د صحابه كرامو رضي الله عنهم اجماع مراد ده.چه ددې په اړه كي د قرآن كريم أولئك هم المؤمنون حقا أولئك هم الصدقون ﴿أولئك هم المفلحون﴾ وغيره په كثرت سره صريح آياتونه راغلی دی.چه په صحيح معنی كي كامل مؤمنان هم دغه حضرات صحابه كرام رضي الله عنهم وو.په خلاف د روسته راتلونكو خلګو،چه دغه خلګ اګرچه مؤمنان دی.خو هيڅ قطعی دليل نشته.ځكه چې ايمان په زړه كي وی.او په دې باندې د الله ﷻ نه علاوه هيڅ چاته اطلاع نه وی.او خبره داده.چه سړی د خپل اعتقاد مطابق يقين ساتی.چه هغه مسلمان دې.خودا هيڅ كله نشی وئيلې.چه زما په زړه كي هغه ايمان دې.كوم چې الله تعالى ته خوښ دې.(عين تهذيب)

## د څاروی د مال كولو د اجرت حكم

قال: (ولا يجوز أخذ أجرة عسب التيس) وجائز نه دی ، نر په ماده د اچولو اجرت اخستل.وهو أن يؤجر فحلا لينزو على

---

١) من حديث قال الزيلعي رحمه الله غريب مرفوعاً ولم أجده إلا موقوفاً على ابن مسعود رضي الله عنه وله طرق ثم رمزه إلى مسند احمد(٣٧٩١١)_

الْإِنَاثِ او هغه دادي چه نر ددي لپاره كرايه باندي واخلي. چي دا به په ماده (څاروو) باندي خيجوي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه د نبي كريم ﷺ ارشاد دي. {اِنَّ مِنَ السُّحْتِ عَسْبَ التَّيْسِ} (١) چه د حرامي مزدوري څخه د نر خيجول دي. وَالْمُرَادُ أَخْذُ الْأُجْرَةِ عَلَيْهِ او مراد په دي باندي اجرت اخستل دي.

**حل اللغة:** عسب: (ض) خيجول، اچول، تيس: ځنګلي چيلي (سيرلي)، فحل: د هر څاروى نر، لينزود (ن) نزوا: خيجول، اناث: د انثى جمع ده ماده، سحت: حرام، پليته، ناجائز مزدوري، چه په دي سره شرم لازميږي.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله د،، عسب التيس،، تفسير په،، و هو ان يواجر...،، سره كاوه كي دا خودلي ده. چه كلام كي مجاز دي. چه تيس ونيلو سره مطلق فحل مراد اخستي شوي دي. لكه مثلاً (د څاروى په پزه كي مهار اچولي شي. چه هغي ته مرسن (پيزوان) واني. نو) د مرسن (پيزوان) ذكر كاوه سره مطلق پزه مراد اخستلي شي. «يقال عسب (ض) الفحل الناقة عسبا» په دي معنى چه،، نر په ماده اچول،، اوس ددي فعل اجرت اخستل جائز دي اوكه نه؟

د جواز قائلين۞ نو ابن ابى اوفى او امام مالك رحمه الله ددي جواز ارخ ته تلي دى. په دي شرط چي اجاره د معلومو خيجولو (مال كولو) او معلوم مودي باندي وى. د حضرت حسن او ابن سيرين رحمه الله نه هم رخصت منقول دي. حضرت عطاء رحمه الله فرمائي. «لا تعطه على طراق الفحل أجراً إلا أن لا تجد من يطرقك» د حضرت قتاده رضی الله عنه قول هم دادي. سحنون د ابن وهب نه نقل كړى دى. دوى فرمائي. چه ما د عبد العزيز بن ابى سلمه نه ددي په اړه كي پوښتنه اوكړو. نو هغوى اوفرمائيل. «لا باس بذالك» ابن القاسم فرمائي. چه امام مالك رحمه الله ددي د جواز قول ځكه كړي دي. چه هغوى په دي باندي د مديني والا خلګو عمل موندلي دي. چه دا ددوى په نيز دليل دي. ابن الجوزي رحمه الله په كتاب التحقيق كي ددوى لپاره د ترمذي او نسائي د انس رضی الله عنه د حديث نه استدلال كړي دي. «أن رجلاً من كلاب سأل النبي ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال يا رسول الله ﷺ انا نطرق الفحل فنكرم فرخص له في الكرامة»،، د قبيله كلاب يو سړي د نبي كريم ﷺ نه د نر په ماده باندي د اچولو د اجرت په اړه كي پوښتنه اوكړو. نو نبي كريم ﷺ منع اوفرمائيله. هغه اووئيل. اې د الله رسوله ﷺ! موږ نر خيجوو، او انعام حاصله وو. نو هغوى ﷺ هغه ته د انعام اخستلو اجازت وركړو،،

**د حرمت قائلين۞** څو حضرت علي، ابوهريره، براء ابن عازب رضی الله عنه وغيره د صحابه كرامو يو جماعت، او امام اوزاعي، ابو ثور، ابو سليمان، امام ابوحنيفه، امام شافعي، او ابن المنذر رحمهم الله وغيره د اكثرو فقهاؤ په نيز مذكوره اجرت اخستل جائز نه دي.

**د حرمت دليل۞** ځكه چي بخاري، ترمذي، ابوداؤد، او نسائي د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت كړي دي. «أن النبي ﷺ نهى عن عسب الفحل» او په مسند بزار كي د ابوهريره رضی الله عنه حديث دي. «أن النبي ﷺ نهى عن ثمن الكلب و عسب التيس» اود انس رضی الله عنه د حديث ځواب دادي. چه په دي كي د كرامت په طور د تحفي اخستلو رخصت دي. او په كرامت او اجرت كي توپير دي. چه اجرت مشروط في العقد وي. او كرامت خالص تبرع، احسان او مهرباني وي.

### په امامت، اذان، او په تعليم د فقه او د قرآن باندي د اجرت حكم

قَالَ: (وَلَا الْاِسْتِئْجَارُ عَلَى الْأَذَانِ وَالْحَجِّ) و نه اجاره اخستل په آذان او حج باندي،

١) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ ثم ذكر حديث ابن عمر (رض) أن النبي ﷺ نهى عن عسب الفحل وعزاه إلى البخاري وغيره (أى أخرجه البخاري في الإجارة باب ٢١ وأبوداود في البيوع باب ٤٠ رقم ٣٤٢٩ والترمذي في البيوع باب ٤٥ رقم ١٢٧٣ والنسائي في البيوع باب ٩٤ رقم ٤٣٥٦ وأحمد في المسند (١٤١٢) والحاكم في المستدرك



**تشريح:** په آذان او حج باندي اجاره اخستل جائز نه ده. د عدم جواز قائلين حضرت عطاء، طاؤس، ضحاك، زهري، حسن ابن سيرين، ابراهيم نخعي، شعبي، او د احنافو رحمهم الله ټولو هم دا قول دي. اود امام احمد رحمه الله نه هم دا قول دليل سره ثابت دي. لكه چي حاوى حنابله كي دى. «و لا يصح الإستيجار على الأذان و الإقامة و الإمامة و تعليم القرآن و الفقه و النيابة في الحج».

وَكَذَا الْإِمَامَةُ وَتَعْلِيمُ الْقُرْآنِ وَالْفِقْهِ) و هم دغه ډول امامت او د قرآن او فقة تعليم دي.

**تشريح:** دغه ډول د لمونځ اقامت اود قرآن او فقة تعليم باندي هم اجاره جائز نه ده. د شيخ انزاري رحمه الله په قول امام شافعي رحمه الله ددي خلاف دي. په لنډيز انقادي كي د اصل نه نقل دى. چه د نيكئ په كار باندي اجاره جائز نه ده. لكه تعليم د قرآن، تعليم د فقة، اذان، تذكير (نصيحت)، تدريس او حج. د مديني د خلګو په نيز جائز دي. امام شافعي، عصام الدين، ابونصر، او فقيه ابوالليث رحمهم الله هم دا اختيار كړي دي.

وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ طَاعَةٍ يَخْتَصُّ بِهَا الْمُسْلِمُ او اصل دا دي. چه هر هغه طاعت چي هغي سره مسلمان مختص وى. لَا يَجُوزُ الْاِسْتِئْجَارُ عَلَيْهِ عِنْدَنَا. هغي باندي زموږ په نيز اجاره اخستل جائز نه ده.

**تشريح:** په دي باب كي قاعده كليه داده. چه هرهغه نيكى كومه چي مسلمانانو سره خاص وى. زموږ په نيز هغي باندي اجاره اخستل جائز نه ده. البته كه هغه د ملت اسلام سره خاص نه وى. نو (اجاره اخستل) جائز ده. لكه مثلاً يو مسلمان سړي د يو ذمي سره د تورات په تعليم باندي عقد اجاره اوكړي. نو جائز ده. ځكه چي د تورات تعليم د ملت اسلام سره خاص نه دي.

### د جواز قائلين اود هغوى دلائل

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ يَصِحُّ فِي كُلِّ مَا لَا يَتَعَيَّنُ عَلَى الْأَجِيرِ اود امام شافعي رحمه الله په نيز صحيح ده. په هر يو داسي عمل كي كوم چي اجير باندي متعين نه وى. لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى عَمَلٍ مَعْلُومٍ غَيْرِ مُتَعَيَّنٍ عَلَيْهِ فَيَجُوزُ ځكه چي داسي معلوم عمل باندي اجاره ده. چه دا په اجير باندي متعين نه ده. نو جائز به وى.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله په نيز هرهغه نيكئ باندي اجرت اخستل صحيح دي. كوم چي اجير باندي متعين يعنى عين واجب نه وى. د امام ابوالخطاب روايت كي امام احمد، ابوثور، او ابوقلابه رحمهم الله هم ددي قائل دى. ځكه چي دا اجاره په داسي معلوم عمل باندي ده. چي ددي كول اجير باندي متعين نه دى. نو جائز ده.

؟ د،، ما لا يتعين،، قيد ددي لپاره دي. كه دا كار اجير باندي متعين وى. مثلاً په يو مقام باندي څوك سړي د لمونځ امامت لپاره متعين وى. چه دده نه علاوه بل څوك سړي د امامت قابل نه وى. نو اجاره جائز نه ده. دغه ډول كه څوك فتوى وركونكي او د فقة او د قرآن تعليم لپاره متعين وى. بيا هم بالاتفاق ناجائز ده.

؟ د امام شافعي رحمه الله د حديثو دلائل لاندي دى: ① د صحيحينو د ابوسعيد خدري رضی الله عنه حديث: (قال انطلق نفر من أصحاب النبي ﷺ في سفرة سافروها حتى نزلوا على حي من احياء العرب فاستضافوهم فأبوا أن يضيفوهم فلدغ سيد ذالك الحي فسعوا له بكل شيء لا ينفعه شيء فقال بعضهم لو أتيتم هؤلاء الرهط الذين نزلوا العلة أن يكون هم شيء فأتوهم فقالوا إن سيدنا لدغ و سعينا له بكل شيء لا ينفعه فهل عند أحد منكم من شيء فقال بعضهم ! نعم و الله اني لأرقي و لكن و الله لقد استضفناكم فلم تضيفونا فما أنا براق لكم حتى يجعلوا لنا جعلاً فصالحوهم على قطيع من الغنم فانطلق يتفل عليه و يقرأ ﴿الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ فكأنما نشط من عقال فانطلق يمشي و ما به قلبة قال: فأوفوهم جعلهم الذي صالحوهم عليه فقال بعضهم اقسموا فقال الذي رقى: لا تفعلوا حتى نأتي النبي ﷺ فنذكر له الذي كان فننظر ما يأمرنا فقدموا على رسول الله ﷺ فذكروا له ذالك فقال: و ما يدريك انها رقية؟ ثم قال: قد أصبتم اقسموا و اضربوا لي معكم سهماً»

،،حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه فرمائي. چه د رسول الله ﷺ د اصحابو رضی الله عنهم يو جماعت په سفر كي لاړلو. اود عربو يوې قبيلې سره ايسار شو. نود هغوى نه ئي ميلمستيا اوغوښتله. څو هغوى د ميلمستيا كاوه نه انكار اوكړو. (هم په دې دوران) ددې قبيلې سردار لړم اوچيچلو. خلګو په هرڅه بنه كوښښ اوكړو. څو هيڅ فائده اونشوه. بيا

بعضو مشوره ورکړله.که ته هغوی له ورشي.کوم چي دلته کي راغلی دی.نو کیداي شي چي هغوی سره څه وی.نو هغوی راغلل.او وي وئیل.چه زموږ سردار لړم چیچلي دي.اوموږ ډیر تدبیرونه اوکړل.خو هیڅ فائده ني اونکړله.نو آیا په تاسو کي چا سره څه تدبیر شته؟ یو کس اوونیل.آؤ زه ني دم کوم.خو موږه ستاسو ملمانه جوړیدل اوغوښتل.تاسو انکاراوکړو.نو زه ني نه دموم.ترکومه پوري چي تاسو معاوضه رانکړئ.نو هغوی د چیلو د یوي رمي ور کاوه معاهده اوکړله.نو یو صحابي لاړلو.سورة فاتحه ني اوونیله.او دم ني کړله.هغه فوراً تیك شو.لکه چي یو حیوان (څاروي) کلاؤ کړي شي.او هغه داسي روان شو.لکه چي ده ته هیڅ تکلیف نه وو.هغه اوونیل.دوی ته معاوضه ورکړئ.دکوم چي دوی سره فیصله شوي ده.بعضو صحابوﷺ اوونیل.دا ویش کړئ.خو چا چي دم اچولي وو.هغه اوونیل.داسي مه کوئ.تر هغه وخته پوري چي موږ نبی کریمﷺ ته اورسیږو.او واقعه بیان کړو.او اوګورو.چه هغوی ﷺ څه ارشاد فرمائي.نو کله چي هغوی خدمت کي حاضر شو.او قصه ني واوروله.هغوی ﷺ اوفرمائیل.تاسو ته څه پته اولګیدله.چه سورة فاتحه یو دم هم دي.وي فرمائیل.تاسو ښه اوکړل.ویش کړئ.او زما برخه هم پکي اوکړئ.③ د ابن عباس رضي الله عنهما حدیث چي ددي تخریج امام بخاری رحمه الله په کتاب الطب کي کړي دي: «ان نفراً من أصحاب النبيﷺ مروا بماء فيهم لديغ او سليم فعرض لهم رجل من اهل الماء فقال أهل فيكم من رواق فإن فى الماء رجلاً لديغاً او سليماً فانطلقوا رجل منهم فقرأ بفاتحة الكتاب على شاء فبرأ فجاء بالشاء إلى أصحابه فكرهوا ذالك و قالوا أخذت على كتاب الله أجراً حتى قدموا المدينة فقالوا يا رسول اللهﷺ اخذ على كتاب الله أجراً فقال رسول اللهﷺ ان أحق ما أخذتم عليه أجراً كتاب الله» ،، د نبی کریمﷺ بعض صحابه کرامﷺ چیني والو سره خواکي تیرشو.چه په هغوی کي یوکس مار یا لړم چیچلي پروت وو.نو هغوی کي یوکس راغئ.او وي وئیل.آیا په تاسو کي څوك دم ګري شته.ځکه چي چیني والو کي یوکس مار یا لړم چیچلي دي.نو یو صحابيﷺ لاړلو.اود یو څو چیلو په بدله کي ني سورة فاتحه دم کړله.هغه صحت یاب شو.او ده وزه واخستلي.او خپلو ملګرو خوا له راغئ.هغوی دا ناخوښه اوګڼړله.او وي وئیل.چه په کتاب الله دي اجرت اخستي دي.ترڅي چي هغوی مدیني ته اورسیدل.او عرض ني اوکړو.چه ای د الله رسولهﷺ ! دوی په کتاب الله باندي اجرت اخستي دي.هغویﷺ اوفرمائیل.د ټولو نه زیات تاسو چي په څه باندي د اجرت اخستلو حقدار یئ، هغه کتاب الله دي،،

④ د صحیحینو حدیث د سهل بن سعد الساعدیﷺ، چي ددي په آخر کي دی : «هل معك من القرآن شيء؟ قال مني سورة كذا سورة كذا قال: إذهب فقد انكحتها بما معك من القرآن» ،، آیا تا سره د قرآن څه برخه شته؟ عرض ني کړل.فلاني فلاني سورة شته دي.وي فرمائیل.لاړ شه.د قرآن په وجه ما ستا سره په دي نکاح اوکړله،،

**د احنافو نقلي دلائل**

| |
|---|
| **وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** زموږ دلیل د نبی کریمﷺ ارشاد دي. {**اقْرَءُوا الْقُرْآنَ وَلَا تَأْكُلُوا بِهِ**}(١) چي قرآن بنایه.او ددي عوض مه خوره. **وَفِي آخِرِ مَا عَهِدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ** او کوم عهد چي نبی کریمﷺ د حضرت عثمان بن ابی ابی العاص نه واخستلو.د هغي په آخر کي دی. {**وَإِنْ اتَّخَذْتَ مُؤَذِّنًا** چي ته |
| |
| مؤذن جوړ کړئ شي. **فَلَا تَأْخُذْ عَلَى الْأَذَانِ أَجْرًا**}(٢) نو په آذان باندي اجرت مه اخله |

تشریح: د احنافو وغیره روایت شوی دلیلونه لاندي دی :① «إقرؤا القرآن و لا تاكلوا بـه» (احمد ، اسحاق بن راهویه، ابن ابی شیبه، عبدالرزاق، عبد بن حمید، ابو یعلی موصلی ، طبرانی عن عبدالرحمن بن شبلﷺ، بزار عن عبدالرحمن بن عوفﷺ، ابن عدی عن ابی هریرهﷺ) ترجمه: ،،نبی کریمﷺ ارشاد اوفرمائیلو.قرآن

١) من حديث عبدالرحمن بن شبلﷺ أخرجه أحمد فى المسند(٤٢٨١٣)_

٢) أخرجه أبوداود فى الصلاة باب ٣٩ رقم ٥٣١ والنسائى فى الأذان باب ٣٢ رقم ٦٤٨)_



ښایه.او ددي عوض مه خوره،، ② «إن من آخر ما عهد إلى رسول اللهﷺ أن اتخذ مؤذناً لا يأخذ على الأذان اجراً» ( اصحاب سنن اربعه، احمد ، حاکم عن عثمان بن ابی العاصﷺ) ③ حدیث د مغیره بن شعبهﷺ «قلت يارسول اللهﷺ اجعلنى امام قومى، قال قد فعلت ثم قال صل بصلاة أضعف القوم و لا تتخذ مؤذناً يأخذ على الأذان اجراً» ( بخاری فی تاریخه) ④ حدیث د عباده بن صامتﷺ: «قال علمت ناساً من اهل الصفة القرآن فاهدى إلى رجل منهم قوساً فقلت ليست بمال و ارمى بها فى سبيل الله فسألت النبيﷺ عن ذالك فقال: إن أردت أن يطوقك الله طوقاً من نار فاقبلها» ( ابوداوُد، ابن ماجه، حاکم) ،،حضرت عبادهﷺ فرمائي.چه ما اهل صفه کي بعضو خلګو ته قرآن اوخودلو.هغوی کي یو سړي ماته په هدیه کي یو کمان ( لینده) راکړله.ما خیال اوکړو.چه دا مال نه دي.ددي ځخه به جهاد کي کار اخلم.بیا مي ددي اره کي د نبی کریمﷺ نه پوښتنه اوکړو.نبی کریمﷺ اوفرمائیل.که ته غواړي.چه الله تعالی ستا په سټ کي د اور یو طوق واچوی.نو قبول ني کړه،، ⑤ «قال رسول اللهﷺ من قرأ القرآن يتاكل به الناس جاء يوم القيامة و وجهه عظم ليس عليه لحم» ( بیهقی فی شعب الایمان)

**د احنافو عقلي دلائل**

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ الْقُرْبَةَ مَتَى حَصَلَتْ** او ځکه چي کله قربت حاصل شو. **وَقَعَتْ عَنِ الْعَامِلِ** نو دا د عامل د اړخه واقع شو. **وَلِهَذَا تُعْتَبَرُ أَهْلِيَّتُهُ** دي وجه د عامل د اهلیت اعتبار دي. **فَلَا يَجُوزُ لَهُ أَخْذُ الْأَجْرِ مِنْ غَيْرِهِ** نو دده لپاره د بل نه اجرت اخستل جائز پاتي نشو. **كَمَا فِي الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ** لکه څنګه چي روژه او لمانځه کي دی. |

تشریح: دا زموږ عقلي دلیل دي.چه کله څه فعلي قربت واقع شي.نو دا د عامل د اړخه د ثواب کار شو.قال الله تعالی ﴿وَأَنْ لَيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ په دي وجه کارونو کي د عامل د اهلیت او لیاقت اعتبار دي.یعني دا چي هغه مثلاً د اذان یا امامت لائق وی.او ځکه چي په دي کارونو کي د عامل نیت شرط دي.کار شرط نه دي.نو دده لپاره به په دي کارونو باندي اجرت اخستل جائز نه وی.لکه په لمونځ او روژه باندي اجرت اخستل بالاتفاق ناجائز دی.

| |
|---|
| **وَلِأَنَّ التَّعْلِيمَ مِمَّا لَا يَقْدِرُ الْمُعَلِّمُ عَلَيْهِ إِلَّا بِمَعْنًى مِنْ قِبَلِ الْمُتَعَلِّمِ** او ځکه چي تعلیم داسي شئ دي.چه په دي باندي معلم قادر نه دي.خود متعلم د طرفه.یو معنی سره. **فَيَكُونُ مُلْتَزِمًا مَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ** نو معلم د داسي خبري التزام کونکي شو.چه د هغي په پوره کاوه باندي هغه قادر نه دي. **فَلَا يَصِحُّ** نو اجاره به صحیح نه وی. |

تشریح: دا دوهم عقلي دلیل دي.چه تعلیم یو داسي شئ دي.چه دا د معلم په قدرت او اختیار کي نشته.خودا هغه وخت وی.کله چي شاګر هم ذهین او پوهه وی.او د تعلیم قابل وی.نو استاد په اجاره سره د داسي خبري التزام اوکړو.چه ددي پوره کول دده په اختیار کي نه دی.نو اجاره به صحیح نه وی.

تنبیه: د علامه مرغینانی رحمه الله پیش کړي دوهم عقلي دلیل باندي صاحب د نتائج الافکار دا بحث کړي دي.که د معلم د عدم قدرت نه مراد دا وی.چه د تعلیم په کار کي دده هیڅ دخل هم نشته.بیا خودا نه منو.ځکه چي خودل او لوستل صرف د معلم کار دي.چه په دي کي د طالب علم هیڅ دخل نشته.دده کار خو صرف پوهیدل او یادول دی.او که ددي نه مراد دا وی.چه د تعلیم اثر او ددي فائده ښکاره کیدلو کي د طالب علم دخل هم دي.په دي معنی چي کوم وخته پوري هغه د معلم لوستلي شوي قبول نکړی.او معلم چي د کومي خبري هغه ته تلقین کړي دي.په هغي پوهه نشي.تر هغه وخته پوري د هغه د تعلیم هیڅ اثر او فائده نه ښکاره کیږي. نودا منو.خو معلم چي د کومي خبري التزام کړي دي.هغه پخپله د خپل فعل التزام دي.چه په دي باندي هغه قادر دي.د طالب علم د کار التزام ني نه دي کړي.او پخپل فعل باندي اجرت اخستلو سره هیڅ شئ مانع نه دي.

سوال: ممکن ده چي څوك اووائي.چه پخپله وئیل او بل ته خودل دا یو ذات سره تعلق ساتي.او مختلف

بالاعتبار دی.لکه څنګه چې بعضو کتابونو کې ذکرکړې شوې دی.نو خبره هم هغه شوه.چه تعلیم باندې اجرت اخستل، په هغه تعلم (او لوستلو) باندې اجرت اخستل دی.چه هغه د غیر فعل دې؟

خواب* دادې.اول خودا چې پخپله وئیل او بل ته خودل د یو ذات نه نه منلې کیږی.او که اومنلې شی.نو تغایر اعتباری کافی دې.څکه چې تعلیم او تعلم په ډیرو احکامو کې مختلف دی. ﴿فلیکن لی اخذ الاجرة علیه کذالك﴾.

د امام شافعی رحمه الله د دلائلو خوابونه✿ د امام شافعی رحمه الله د① رومبی مستدل خواب د ابن الجوزی رحمه الله په قول دادې.چه د کومو خلګو نه حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه اجرت اخستې وو.هغه کافر خلګ وو.او کافرانو نه مال اخستل جائز دی.او بل دا چې د میلمه حق واجب دې.او دغه خلګو ددوی میلمستیا نه وه کړې.لکه چې په حدیث کې دې صراحت هم موجود دې. ﴿و الله لقد استضفنا کم فلم تضیفونا﴾ ددې نه علاوه رقیه (دمول) قربت محضه نه دې.نو په دې باندې اجرت اخستل جائز دی.شیخ قرطبی رحمه الله د مسلم په شرح کې فرمائی . ﴿لا نسلم ان جواز الأجرة فی الرقی یدل علی جواز التعلیم بالأجرة و الحدیث إنما هو فی الرقیة﴾. ② د دوهم مستدل خواب دادې.چه صحابه کرام رضی الله عنهم ددې خبرې نه بنه خبر وو.چه کتاب الله باندې اجرت اخستل حرام دی.او هغوی دا جائز ګنړلو.غلط فهمی صرف د دمولو په تعمیم کې وه.نبی کریم ﷺ دا غلط فهمی لرې کړله.او وې خودل.چه دمول ددې قبیلې څنې نه دې.بلکه کتاب الله سره دمول، او په دې اجرت اخستل ددې نه غوره دی.چه د کتاب الله نه په علاوه سره دمول او منتر وغیره اوکړې شی.او اجرت واخستلې شی.ددې نه علاوه دمول یو ډول دوائې اود علاج یوه طریقه ده.او په دوائی او علاج باندې اجرت اخستل مباح دی.③ پاتې شو د امام شافعی رحمه الله دریم مستدل، یعنی د نبی کریم ﷺ په تعلیم د قرآن باندې نکاح کول.نو ددې خواب دادې.چه په دې کې ددې صراحت نشته.چه تعلیم د قرآن مهر جوړکړې شوې وو.ممکن ده.چه ددې د اکرام او د قرآن د تعظیم په وجه نې د مهر نه بغیر نکاح کړې وی.لکه چې نبی کریم ﷺ د حضرت ابوطلحه رضی الله عنه واده حضرت ام سلیم سره ددوی په اسلام باندې کړې وو.یا دمهر بیانولو نه سکوت ددې لپاره وی.چه مهر خو خامخا لازمی شئ دې.څکه چې د فرجونو استباحت د مال نه بغیر نه کیږی. لقوله تعالی : ﴿أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ﴾ ﴿و لعل المراة و هبت مهرها له﴾.

| وَبَعْضُ مَشَايِخِنَا اسْتَحْسَنُوا الِاسْتِئْجَارَ عَلَى تَعْلِيمِ الْقُرْآنِ الْيَوْمَ او زموږ بعضو مشائخو په دې زمانه کې په تعلیم د قرآن باندې اجاره مستحسن ګرخولې ده. لِأَنَّهُ ظَهَرَ التَّوَانِي فِي الْأُمُورِ الدِّينِيَّةِ. څکه چې دینی امورو کې سستي ښکاره شوې ده. فَفِي الِامْتِنَاعِ تَضْيِيعُ حِفْظِ الْقُرْآنِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى نو (د اجرت نه) په منع کیدلو سره به حفظ د قرآن ضائع کیږی.هم په دې فتوی ده. |
|---|

تشریح: یعنی د اصولو او دلائلو په لحاظ سره په قرباتو اود نیکئ په کارونو اجرت اخستل اګرچه اجرت اخستل جائز نه دی.لکه چې وړاندې ذکر کړې شو.خو نن سهار فتوی هم په دې ده.چه په اذان، امامت، تعلیم د قرآن او تعلیم د فقه وغیره باندې اجرت اخستل جائز دی.او ددې وجه داده.چه د متقدمینو په زمانه کې اول خو هر سړی ته پخپله د دین حاصلولو اړخ ته پوره شوق وو.دویمه داچه د خلفاء او امراء (حاکمانو) د اړخه هم وظائف (او تنخواه ګانې) مقرر وې.اونن سهار نه هغه شوق شته.نه عطیات او وظائف شته.که په نن سهار زمانه کې ددې اجازت ورنکړې شی.نود حفظ قرآن سلسله به منقطع او د علم حاصلولو دروازه به بنده شی.په دې وجه متاخرین د بلخ مشائخو اجرت اخستل مستحسن ګرخولی دی.او هم په دې فتوی ده.په تتمة الفتاوی کې دی.چه شیخ شمس الائمه سرخسی رحمه الله په باب الاجارة الفاسده کې ذکر کړی دی.چه د بلخ مشائخو د مدینې د خلګو قول اختیار کړې دې.چه په تعلیم د قرآن باندې اجرت اخستل جائز دی.نو موږ هم ددې د جواز فتوی ورکوو.د فقیه ابواللیث رحمه الله مشهور قول دې.چه درې شیان به نې ناجائز ګنړل.او ددې فتوی به نې ورکوله.چه په هغې کې یوه په قرآن باندې د اجرت اخستلو مسئله هم ده.خو بیا د قرآن تعلیم



ضائع کیدلو په یره نې ددې اجازت ورکړو.(رسائل ابن عابدین)

① بیا اوومې صدئ پورې دا اجازت صرف د قرآن د تعلیم حده پورې وو.لکه چې د علامه مرغینانی رحمه الله چې د شپږمې صدئ دې.او صاحب د کنز چې د اوومې صدئ دې.ددوی د رائې نه معلومیږی.ددې نه روسته صاحب د وقایه رحمه الله (متوفی سن۷۴۷هـ) په تعلیم د فقه باندې اجرت جائز اوګرخولو.تردې چې روسته په امامت او اذان او هر قسمه دینی تعلیم لپاره اجرت اخستل صحیح او جائز اوګرخولی شو.

② په رسائل ابن عابدین کې دی.چه اصحاب تخریج او ترجیح په اذان او اقامت باندې د اجرت د جواز فتوی په دې یقین سره ورکړې وه.چه امام ابوحنیفه رحمه الله او ددوی اصحاب هم ددوی په دور کې ژوندی وې.نو هغوی به هم دا وئیلې.او د خپل مخکنی قول څخه به نې رجوع کوله.په روضة زند ویسی کې دی.چه زموږ شیخ ابومحمد عبدالله بن الفضل خیز اخزی مفتی بخاری به فرمائیل.چه زموږ په زمانه کې امام، موذن او معلم له اجرت اخستل جائز دی.په نهایه کې دی.چه دغه ډول به په تعلیم د فقه باندې هم د اجرت اخستلو د جواز فتوی ورکولې شی.

## د ګانو او نوحه ګرو او د ګناهونو په آلاتو د اجرت حکم

| قَالَ: (وَلَا يَجُوزُ الِاسْتِئْجَارُ عَلَى الْغِنَاءِ وَالنَّوْحِ) وجائز نه دی.اجاره اخستل په ګانو او نوحه کاوه باندې، (وَكَذَا سَائِرُ الْمَلَاهِي) اودغه ډول په نورو د لوبو او ګانو آلاتو باندې، لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ څکه چې دا په ګناه باندې اجاره ده. وَالْمَعْصِيَةُ لَا تُسْتَحَقُّ بِالْعَقْدِ اود ګناه استحقاق عقد سره نه کیږی. |
|---|

حل اللغة: غناء: د غنی څنې دې.په معنی د ګانې سره.او غناء د غنی (س) څنې په معنی د مالدارئ سره، اوغناء د غنّی (س) بالمکان څنې په معنی د اقامت کولو.نوح: (ن) په مړی باندې ژړل،او واویلا کول، ملاهی: د ملهی جمع ده.د لوبو او ګانو آله،

تشریح: دلوبو اوګانو وئیلو، په مړی باندې د ژړا، د ډولکی ، طنبل، او باجه وغیره دباجو غږولو لپاره اجاره باندې اخستل جائز نه دی.بلکه اجاره باطل ده.هیڅ اجرت به واجب نه وی.زموږ آئمه ثلاثه، امام مالك، امام احمد، او ابوثور رحمهم الله هم دا قول دې.(د امام شافعی او ابراهیم نخعی رحمهما الله په نیز اجاره جائز ده.خو مکروه ده).

① موږ وایو.چه اجاره په ګناه ده.اود عقد اجاره په ذریعه شرعاً معقود علیه سپارل واجب وی.حالانکه سړی باندې د داسې شئ وجوب جائز نه دې.چه د هغې په وجه هغه شرعاً ګناهګار وی.ګنی ددې ګناه نسبت به شریعت اړخ ته کیږی.چه دا باطل دې.شیخ الاسلام اسبیجابی رحمه الله په شرح کافی کې لیکلی دی.چه د هیڅ لهو، لعب او شعرخوانئ وغیره اجاره جائز نه ده.بالاتفاق به هیڅ اجرت واجب نه وی.

## په مشترکه څیز کښې د اجارې حکم

| قَالَ: (وَلَا يَجُوزُ إِجَارَةُ الْمُشَاعِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا مِنَ الشَّرِيكِ)[1] و جائز نه ده د غیرمقسوم اجاره د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز.خود شریك نه. (وَقَالَا:) و صاحبین رحمهما الله فرمائی. (إِجَارَةُ الْمُشَاعِ جَائِزَةٌ) چې د غیرمقسوم اجاره جائز ده. |
|---|

تشریح: د امام ابوحنیفه، امام زفر، او امام احمد رحمهم الله په نیز د مشاع یعنی د مشترك څیز، د ویش نه بغیر چا ته اجاره باندې ورکول جائز نه دی.که د ویش قابل وی.لکه مځکه او سامان وغیره.او که د ویش قابل نه وی.لکه غلام وغیره.اود صاحبینو، امام مالك،او د امام شافعی رحمهم الله په نیز اجاره مشاع علی الاطلاق جائز ده.

[1] القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله کذا فی ردالمحتار(۳۳\۵) والخانیة (۲۳\۳) ومجمع الأنهر(۵۳۶\۳) نقلاً عن القول الراجح (۲۳۱\۲)

وَصُورَتُهُ او ددې صورت دادې. أَنْ يُؤَاجِرَ نَصِيبًا مِنْ دَارِهِ چې د خپل کور يوه برخه اجاره باندې ورکړي. أَوْ نَصِيبَهُ مِنْ دَارٍ مُشْتَرَكَةٍ مِنْ غَيْرِ الشَّرِيكِ. يا په مشترك کور کې خپله برخه د شريك نه علاوه ته اجاره باندې ورکړي.

**تشريح:** د عقد اجاره مشاع صورت دادې. چه په کور کې يوه برخه اجاره باندې ورکړي. چه دا ويش شوې نه وي. يا په مشترکه کور کې خپله برخه د شريکوال نه علاوه بل چاته اجاره باندې ورکړي. ځکه چې شريك ته اجاره باندې ورکول بالاجماع جائز دي. اود شريك نه علاوه بل چا ته اجاره باندې ورکول د صاحبينو رحمهما الله وغيره په نيز جائز دي. ﴿و كذا إذا اجر نصف عبداً و نصف دابة من غير الشريك﴾

لَهُمَا دوی دليل دادې. أَنَّ لِلْمُشَاعِ مَنْفَعَةً چې په مشاع کې هم منفعت دې. وَلِهَذَا يَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ، په دې وجه اجر مثل واجبيږي. وَالتَّسْلِيمُ مُمْكِنٌ بِالتَّخْلِيَةِ او سپارل ممکن دی په جلا کاوه سره. أَوْ بِالتَّهَايُؤِ يا په وار مقررولو سره. فَصَارَ كَمَا إِذَا آجَرَ مِنْ شَرِيكِهِ أَوْ مِنْ رَجُلَيْنِ نو داسې شوه. لکه چې خپل شريك ته يا دوې (دوه) کسانو ته ئې په اجاره باندې ورکړي. وَصَارَ كَالْبَيْعِ. نود بيع پشان شو

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. چه د اجارهٔ مدار په منفعت دې. او کوم شئ چې مشاع (غيرمقسوم) دې. هغې کې منفعت موجود دې. هم دا وجه ده. که مستاجر په دې کې رهائش کوی. نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اجر مثل واجبيږي. که په يو مشاع شئ کې منفعت نه وو. نو اجاره به نه منعقد کيدله. لکه څنگه چې په ارض سبخه (جبه مځکه) کې چې نه منعقد کيږي. بيا غير مقسوم سپارل هم ممکن دی. په دې طريقه چې جدائي کړي. يا وار مقرر کړي. نودا داسې شوه. لکه چې خپل شريکوال يا دوې (دوه) سړو ته اجاره ورکړي. نو په دې کې د تخليه (خپل قابو لرې کولو) حکم داسې شو. لکه چې ددې حکم په بيع کې وی. چه جلا کول سپارل منلی شوی دی.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّهُ آجَرَ مَا لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ چې ده داسې شئ اجاره باندې ورکړو. چه دا نشی سپارلې. فَلَا يَجُوزُ نو جائز به نه وی. وَهَذَا لِأَنَّ تَسْلِيمَ الْمُشَاعِ وَحْدَهُ لَا يُتَصَوَّرُ او دا ځکه چې د تقسيمولو نه بغير څه شئ جلا سپارل متصور نه دی.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه د اجارهٔ مقصد د عين شئ نه نفع حاصلول وی. او ددې خبرې په مشترك شئ کې هيڅ تصور نشته. ځکه چې ددې حواله کول ممکن نه دی. ځکه چې د حواله کاوه تکميل قبضهٔ سره کيږي. او قبضه امرحسی دې. چه ددې راتګ معين شئ باندې کيږي. حالانکه مشاع شئ غير معين دې. نو غير مقسوم شئ جلا سپارل غيرمتصور دی.

وَالتَّخْلِيَةُ اُعْتُبِرَتْ تَسْلِيمًا لِوُقُوعِهِ تَمْكِينًا او جلا شئ سپارل په دې وجه منلې شوی دی. چه په دې کې قابو حاصليږي. وَهُوَ الْفِعْلُ الَّذِي يَحْصُلُ بِهِ التَّمَكُّنُ او دا هغه فعل دې. چه دې سره قابو حاصليږي. وَلَا تَمَكُّنَ فِي الْمُشَاعِ، حالانکه په مشترك کې قابو نه وی. بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِحُصُولِ التَّمَكُّنِ فِيهِ، په خلاف د بيع. ځکه چې دې کې قابو حاصليږي.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول ﴿و التسليم ممكن بالتخلية﴾ خواب دې. چه تخليه (خپل قابو لرې کولو) سپارل منلی شوی دی. دا بالذات نه دی. بلکه په دې اعتبار سره کولې شی. چه په دې سره عين شئ کې تصرف او نفع باندې قابو حاصليږي. او کوم شئ چې نه دې ويش شوې. هغې کې تخليه کول، او منع لرې کاوه سره د انتفاع قابو نه حاصليږي. په خلاف د بيع، چه په دې کې قابو حاصليږي. ځکه چې د بيع مقصد انتفاع نه ده. بلکه قبضه ده. ﴿و لهذا جاز بيع الجحش﴾

وَأَمَّا التَّهَايُؤُ باقې شو وار مقررول، فَإِنَّمَا يُسْتَحَقُّ حُكْمًا لِلْعَقْدِ بِوَاسِطَةِ الْمِلْكِ، نو د عقد په حکم کې ددې استحقاق په واسطه د ملك کيږي. وَحُكْمُ الْعَقْدِ يَعْقُبُهُ او د عقد حکم ددې نه روسته کيږي. وَالْقُدْرَةُ عَلَى التَّسْلِيمِ شَرْطُ الْعَقْدِ حالانکه



د سپارلو قدرت کيدل عقد لپاره شرط دې. وَشَرْطُ الشَّيْءِ يَسْبِقُهُ، او د شئ شرط هميشه د شئ نه وړاندې وی. وَلَا يُعْتَبَرُ الْمُتَرَاخِي سَابِقًا، او د مؤخر وړاندې اعتبار نشی کيدلې.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول، التهايؤ، خواب دې چه، تهايؤ، يعنی وار مقررول، په واسطه د ملك د عقد د احکامو څنې دی. نو عقد کوم چې موجب د ملك دې تهايؤ (وار مقررول) به ددې نه مؤخر وی. يعنی کله چې عقد منعقد شی. بيا به ددې حکم ثابتيږي. ﴿لأن حكم الشئ هو الأثر الثابت بعده﴾ ځکه چې د عقد حکم د عقد د صحت نه روسته کيږي. اود عقد د صحت لپاره چې څومره ممکن وی. حواله کول شرط دی او شرط هميشه د مشروط نه وړاندې وی. نو په وار مقررولو سره به ددې فائده نه حاصليږي. ځکه چې دا په حکم کې د عقد کيدلو په وجه روسته دې. او کوم شئ چې روسته حاصليږي. د هغې وړاندې اعتبار نشی کيدې.

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا آجَرَ مِنْ شَرِيكِهِ باقې شو خپل شريك ته اجاره باندې ورکول، فَالْكُلُّ يَحْدُثُ عَلَى مِلْكِهِ نو پوره به دده په ملك باندې حاصليږي. فَلَا شُيُوعَ نو مشترك شئ به مشترك نه وی.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قياس ﴿فصار كما إذا آجر من شريكه﴾ خواب دې. چه خپل شريك ته اجاره باندې د ورکاوه جواز ځکه دې. چه کل نفع به دده په ملك باندې حاصليږي. (يعنی بعض نفع په حکم د ملك او بعض په حکم د اجاره) نو دلته کې مشترك شئ ثابت نه دې.

**سوال:** ممکن ده چې څوك دا اووائی. که په دې صورت کې شيوع نشته. نود شريك د اړخه هبه او رهن جائز کيدل پکار دی. حالانکه دا جائز نه دی؟

**خواب:** دادې. چه دلته د مشترك نه کيدلو نه مراد دادې. چه داسې مشترك نه دې. چه د حواله کاوه نه منع کوی. اودا خبره جائز ده. چه شيوع په يو اعتبار سره مانع د حکم وی. او په بل اعتبار سره مانع د حکم نه وی. اود شيوع د هبهٔ جواز نه مانع کيدل، د قبضهٔ په لحاظ سره دی. چه په شائع شئ کې مکمل قبضه نه حاصليږي. او د رهن د جواز نه مانع کيدل په دې اعتبار سره دی. چه معقود عليه يعنی منفعت کوم چې دائمی حبس دې. هغه معدوم دې. په خلاف ددې کوم چې موږ وئيلی دی. چه دلته شيوع نه معقود عليه معدوم نه ده. بلکه صرف حواله کول معذور وی. ﴿و ذالك لا يوجد في حق الشريك﴾

وَالِاخْتِلَافُ فِي النِّسْبَةِ لَا يَضُرُّهُ، او د نسبت اختلاف هيڅ نقصان نه ورکوی.

**تشريح:** د يو سوال خواب دې. سوال دادې. چه دا منو. چه خپل شريك ته اجاره ورکاوه سره کل نفع هم دده په ملك سره حاصليږي. خو شريك د خپلې برخې (حصې) نه په لحاظ د ملك منتفع کيږي. اود خپل شريك د برخې (حصې) نه په لحاظ د اجارې منتفع کيږي. نود نسبت د اختلاف په وجه شيوع اوس هم موجود ده؟

**خواب:** حاصل دخواب دادې. چه د نسبت اختلاف هيڅ نقصان نه ورکوی. ځکه چې د اتحاد د حکم اود اتحاد د معقود نه روسته د اسبابو د اختلاف هيڅ اعتبار نه کيږي.

عَلَى أَنَّهُ لَا يَصِحُّ فِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْهُ، ددې نه علاوه دحسن په روايت کی دا هم صحيح نه ده.

**تشريح:** يعنی مذکوره خواب هم په دې روايت دې. چه مشاع شئ خپل شريك ته اجاره باندې ورکول جائز دی. خود امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن روايت دې. چه دا هم جائز نه دی. لکه چې ابو الحسين قدوری رحمه الله په تقريب کې ذکر کړی دی. چه د امام ابوحنيفه او امام زفر رحمهما الله نه د حسن روايت دادې. چه د مشاع اجاره شريك سره وی. او که غير شريك سره وی. په دواړو صورتونو کې ناجائز ده. ﴿فكان كالرهن على هذا الرواية﴾

وَبِخِلَافِ الشُّيُوعِ الطَّارِئِ، او په خلاف د مشترك، لِأَنَّ الْقُدْرَةَ عَلَى التَّسْلِيمِ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ لِلْبَقَاءِ، ځکه چې سپارلو باندې قادر کيدل شرط نه دی. د اجارې د بقاء دپاره.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه چې کوم دليل ذکر شوې دې. په هغې باندې اشکال کيږي. د هغې خواب

دي.

اشکال* دادي.چه مشترك شئ خورشوي بالاجماع مفسد د اجارې نه وي.مثلاً يو كس دوې (دوه) سړو ته يو كور اجاره باندې ورکړو.بيا دې دواړو مستاجرينو كې يو كس مړشو.نو بالاجماع د ژوندي مستاجر اجاره مشاع پاته پاتې كيږي.ظاهرالرواية هم دادي.حالانكه سپارلو باندې قدرت دلته هم نشته؟

خواب*حاصل د خواب دادې.چه د عقد اجاره پاته ساتلو لپاره سپارلو باندې قدرت كيدل شرط نه دي.لكه چې د ابتداء د صلاة لپاره پيل والا تكبير( تكبير تحريمه) شرط دي.د بقاء د صلاة د پاره شرط نه دي.

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا آجَرَ مِنْ رَجُلَيْنِ،او په خلاف د دوې (دوه) سړو ته په اجاره وركولو، لِأَنَّ التَّسْلِيمَ يَقَعُ جُمْلَةً خكه چې سپارل په يو خل شو. ثُمَّ الشُّيُوعُ بِتَفَرُّقِ الْمِلْكِ فِيمَا بَيْنَهُمَا طَارِئٌ بيا په دوی دواړو کې د ملك په تفرق سره اشتراك روسته پيدا شو.

تشريح: د صاحبينو ﷮ د قياس ﴿فصار كما إذا آجر من رجلين﴾ خواب دې.كه يوكس دوې (دوه) سړو ته يو كور كرايه باندې ورکړو.نودا خكه جائز دی.چه تسليم او سپارل په يوخل واقع شو.يعنی شيوع نشته.بيا په دوی دواړو كې د ملك اجاره حاصليدلو شيوع روسته پيدا شوې دې.نودا شيوع طارى ( روسته پيدا شوې او ملاؤ شوې) شو.ابتدائي نه دي.او روسته پيدا شوې شيوع بالاتفاق جائز دې.

تاج الشريعه فرمائي.كه څوك دا اعتراض اوكړي.چه د شيوع طارى كيدل نه منو.بلكه دا شيوع ملاؤ شوې دې.خكه چې عقد اجارد وخت سره سره منعقد كيږي. ﴿فكان الطارى كالمقارن﴾؟

خواب*دادې.چه كوم عقد غيرلازم وي.د هغې د بقاء دپاره،، من كل الوجه،، د ابتداء حكم وي.او كوم عقد چې لازم وي.د هغې دبقاء لپاره من وجه د ابتداء حكم وي.او من وجه نه وي.او اجاره عقد لازم دې.نو ددې د بقاء لپاره به من وجه د ابتداء حكم نه وي.نو ددې وجه په لحاظ سره شيوع مقارن د عقد نشو. ﴿فلم يكن الطارى كالمقارن﴾

لنډيز د مسئلې۞دا شوه.كه يوكس خپل پوره كور بل چا ته اجاره باندې ورکړو.نودا بالاتفاق جائز دی.اوكه هم دا كور ئې دوې (دوه) سړو ته په يو خل يو خائې اجاره باندې ورکړو.بيا هم جائز دی.اوكه يو سړی ته ئې نصف كور پوره اجاره باندې ورکړو.يا ئې دوې (دوه) سړو كې يو كس ته نصف كور اجاره باندې ورکړو.ددې نه روسته ئې نصف كور بل چا ته اجاره باندې ورکړو.نود غيرمقسوم كيدلو په وجه به جائز نه وي.په خلاف د قول د صاحبينو ﷮ .او كه يو سړی ته ئې پوره كور يا دوې (دوه) سړو ته ئې په يوخل يو خائې اجاره باندې ورکړو.بيا ئې د نصف كور اجاره ماته كړله.يا په دوی دواړو( مستاجرينو) كې يوكس مړشو.نود نصف اجاره به پاته پاتې وي.

مفتى به قول۞ په تبيين شرح كنز كې د مفى نه نقل دی.چه د اجاره مشاع مسئله كې فتوى د صاحبينو ﷮ په قول ده.خو په فتوى صغرى كې دی.چه په مزارعه، معاهله اووقف كې خلگو كې د رواج په وجه فتوى د صاحبينو ﷮ په قول ده.اود اجاره مشاع په مسئله كې فتوى د امام ابوحنيفه ﷫ په قول ده.په حقائق كې دا هم دی.ج شيخ نسفى ، برهان الائمه محبوبى ، او صدر الشريعه هم په دې باندې اعتماد كړې دې.

**بچي ته د پيو وركولو لپاره د ښځې په اجرت د نيولو حكم**

قَالَ: (وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الظِّئْرِ بِأُجْرَةٍ مَعْلُومَةٍ) و شيدې وركونكې ښځه په معلوم اجرت سره اجاره باندې نيول جائز دی. لِقَوْلِهِ تَعَالَى: خكه د الله تعالى ارشاد دې،، {فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ} كه دوی ستاسو لپاره شيدې وركوی نو تاسو دوی ته ددوی اجرت وركړئ،، ( الطلاق:٦) وَلِأَنَّ التَّعَامُلَ بِهِ كَانَ جَارِيًا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او خكه چې په دې باندې عمل جارى وو.د نبى كريمﷺ په زمانه كې. وَقَبْلَهُ وَأَقَرَّهُمْ عَلَيْهِ. او ددې نه وړاندې هم.او نبى كريمﷺ دا پخپل حال اوساتلو.

تشريح: يعنی شيدې وركونكې ښځه په معلوم اجرت سره اجرت باندې اخستل جائز دی.خكه د الله تعالى



ارشاد دې. ﴿فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ كه دوی ستاسو لپاره شيدې وركړي.نو تاسو هغوی ته اجرت وركړئ،، ددې نه معلومه شوه.چه اجاره جائز ده.او د نبى كريمﷺ په زمانه كې هم او ددې نه وړاندې هم دا دستور( او رواج) جارى وو.چه ددې نه نبى كريمﷺ هيڅ منع نه وه فرمائيلې.

**شيدې وركول اصل دی او كه منافع؟**

ثُمَّ قِيلَ: بيا ونيلى شوى دی. إِنَّ الْعَقْدَ يَقَعُ عَلَى الْمَنَافِعِ چې عقد به په منافعو باندې واقع كيږي. وَهِيَ خِدْمَتُهَا لِلصَّبِيِّ وَالْقِيَامُ بِهِ او هغه د بچى خدمت كول او دده د كارونو ساتنه كول دی. وَاللَّبَنُ يُسْتَحَقُّ عَلَى طَرِيقِ التَّبَعِ بِمَنْزِلَةِ الصِّبْغِ فِي الثَّوْبِ. او د پيو استحقاق په تابع كيدلو سره كيږي.لكه په كپړو كې رنګ، وَقِيلَ او ونيلى شوى دی. إِنَّ الْعَقْدَ يَقَعُ عَلَى اللَّبَنِ، چې عقد به واقع كيږي.په پيو باندې، وَالْخِدْمَةُ تَابِعَةٌ،او د بچى خدمت ددې تابع دې. وَلِهَذَا لَوْ أَرْضَعَتْهُ بِلَبَنِ شَاةٍ هم دا وجه ده.كه هغه د وزه شيدې وركوی. لَا تَسْتَحِقُّ الْأَجْرَ. نو د اجرت نه مستحق كيږي.

تشريح:د شيدې وركونكې ښځې په اجاره كې معقود عليه ددې شيدې دی او كه ددې منافع؟ په دې اړه كې د مشائخو اختلاف دې.بعض فرمائی.چه معقود عليه ددې منافع وی.يعنى د بچى خدمت كول،دده د كارونو پالنه او ساتنه وغيره كول دی.پاتې شو شيدې نو هغه تابع كيږي.او مستحق جوړيږي.لكه څنګه چې كپړې كې رنګ وی.صاحب د ايضاح، صاحب د ذخيره، امام محمد اود امام شافعى ﷫ بعض اصحاب هدايه او حافظ الدين صاحب دكافى ﷫ هم دا قول اختيار كړې دې.او بعضو ونيلى دی.چه عقد اجاره په حقيقت كې پيو باندې واقع كيږي.پاتې شو د بچى خدمت كول،نو هغه ددې تابع دی.هم دا وجه ده.كه د پيو څكونكى بچى ته د وزه شيدې اوڅكولې شى.نو هغه د اجرت نه مستحق كيږي.محقق شمس الائمه سرخسى ﷫ هم دا اختيار كړې دې.او صاحب د نهايه او علامه عينى ﷮ هم دې ته صحيح ونيلى دی.

وَالْأَوَّلُ أَقْرَبُ إِلَى الْفِقْهِ،او ړومبې قول زيات نژدې دې اصول فقه ته. لِأَنَّ عَقْدَ الْإِجَارَةِ لَا يَنْعَقِدُ عَلَى إِتْلَافِ الْأَعْيَانِ مَقْصُودًا،خكه چې عقد اجاره بالقصد په عين مال هلاكيدلو باندې نه واقع كيږي. كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ بَقَرَةً،لكه چې يوكس غوا ددې لپاره اجاره باندې واخلى. لِيَشْرَبَ لَبَنَهَا. چې ددې شيدې به څكى. وَسَنُبَيِّنُ الْعُذْرَ عَنِ الْإِرْضَاعِ بِلَبَنِ الشَّاةِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى. او د وزه شيدې وركاوه كې د اجرت د عدم استحقاق عذر به موږ نژدې بيان كړو.ان شاء الله تعالى ، وَإِذَا ثَبَتَ مَا ذَكَرْنَا او هركله چې دا ثابته شوه.كوم چې موږ بيان كړل. يَصِحُّ إِذَا كَانَتِ الْأُجْرَةُ مَعْلُومَةً نو اجاره باندې اخستل به صحيح وی.كله چې اجرت معلوم وی. اعْتِبَارًا بِالِاسْتِئْجَارِ عَلَى الْخِدْمَةِ په دې قياس سره چې خدمت باندې اجاره اخستل صحيح دی.

تشريح: علامه مرغينانى ﷫ فرمائی.چه د اصول فقه زيات نژدې قول ړومبنې دې.چه اجاره اصل كې خدمت باندې واقع كيږي.او شيدې تابع دی.خكه چې عقد اجاره بالقصد په اتلاف د عين باندې نه واقع كيږي.او شيدې هم يو عين شئ دې.نو ددې په څښلو باندې اجاره نشى كيدې.لكه څنګه چې دكورپه غولې (صحن) باندې اجاره نه كيږي.بلكه انتفاع باندې كيږي.كه اجاره په پيو وی.نو داسې به وی.لكه چې يوه غوا د پيو لپاره اجاره باندې واخلى.خكه چې دا جائز نه دی.پاتې شو د چيلو پيو وركاوه سره د اجرت نه مستحق كيدل، نو ددې وجه په راتلونكې قول ﴿لأنها لم تات بعمل مستحق عليها﴾ كې راروانه ده.

**د خوراك اود كپړې په عوض د پيو لپاره د نيولو حكم**

قَالَ: (وَيَجُوزُ بِطَعَامِهَا وَكِسْوَتِهَا اسْتِحْسَانًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ)[1] او جائز ده ددې (رضاعی مور) د خوراك او كپړو په عوض استحساناً، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي. (لَا يَجُوزُ) چې جائز نه دی. لِأَنَّ الْأُجْرَةَ مَجْهُولَةٌ خكه چې اجرت مجهول دې. فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَهَا لِلْخَبْزِ وَالطَّبْخِ. نو داسې شوه. لكه چې ښځه د ډوډۍ او سالن پخولو لپاره اجاره باندې واخلي.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دليل د استحسان مرضعه (شيدې وركونكې ښځه) د خوراك او كپړو په عوض اجرت باندې اخستل جائز دی. امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی. لكه چې په حاوی حنابله كې دی. «و يصح استيجار الظئر بطعامها و كسوتها و لها الوسط» د صاحبينو او امام شافعي رحمهم الله په نيز جائز نه دی. د قياس تقاضه هم داده. خكه چې اجرت مجهول دې. نو داسې شوه. لكه چې ښځه د ډوډۍ او خوراك پخولو لپاره اجرت باندې واخلي. او اووائي. چه هره ورځ لس سيره اوړه او لس سيره غوښه پخه وه. چه ددې اجرت خوراك او كپړه شوه. حالانكه دا جائز نه دی.

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ الْجَهَالَةَ لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ، چې دا جهالت به جګړې پورې نه رسوی. لِأَنَّ فِي الْعَادَةِ التَّوْسِعَةَ عَلَى الْأَظْآرِ خكه عادت هم دادې. چه په پيو وركونكو ښځې باندې فراخي كولې شي. شَفَقَةً عَلَى الْأَوْلَادِ اولاد باندې د شفقت په لحاظ. فَصَارَ كَبَيْعِ قَفِيزٍ مِنْ صُبْرَةٍ، نو دا په ډهيرى كې ديو قفيز خرخولو پشان شو. بِخِلَافِ الْخَبْزِ وَالطَّبْخِ په خلاف د ډوډۍ او سالن پخولو. لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهِ تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ خكه چې داجهالت جګړې پورې رسوی. (وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ): په جامع صغير كې دی. فَإِنْ سَمَّى الطَّعَامَ دَرَاهِمَ وَوَصَفَ جِنْسَ الْكِسْوَةِ وَأَجَلَهَا وَذَرْعَهَا كه د طعام درهم او د كپړو جنس، ددې موده او ددې ګز بيان كړی. فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دی. يَعْنِي بِالْإِجْمَاعِ. يعني بالاجماع، وَمَعْنَى تَسْمِيَةِ الطَّعَامِ دَرَاهِمَ او د طعام درهم بيانولو مطلب دادې. أَنْ يَجْعَلَ الْأُجْرَةَ دَرَاهِمَ چې د اجرت درهم مقرر كړی. ثُمَّ يَدْفَعُ الطَّعَامَ مَكَانَهُ بيا ددې په ځاى طعام وركړی. وَهَذَا لَا جَهَالَةَ فِيهِ او په دې كې په حقيقت كې هيڅ جهالت نشته.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه دا جهالت د جګړې سبب نه دی. خكه چې د بچي محبت او شفقت په وجه مرضعه (شيدې وركونكې ښځې) باندې خوراك او كپړو كې د فراخۍ كاوه عام عادت دې. نو داسې شوه. لكه په ډهيرى كې يو قفيز خرخول، چې په دې كې هم هيڅ منازعت نه راپيښيږی. بلكه بائع چې د كوم ارخه غوارې وركړی. په خلاف د ډوډۍ او سالن د پخولو د اجارې، چه په دې كې اجرت مجهول كيدلو سره جګړې پورې نوبت رسيږی.

## په اجاره كښې د خوراك نوم او اندازه بيانول

(وَلَوْ سَمَّى الطَّعَامَ) وكه طعام ئې بيان كړو. وَبَيَّنَ قَدْرَهُ او ددې مقدار ئې بيان كړو. جَازَ أَيْضًا) لِمَا قُلْنَا، نو بيا هم جائز دی. په هغه وجه كومه چې موږ بيان كړله. وَلَا يُشْتَرَطُ تَأْجِيلُهُ، او ددې موده بيانول شرط نه دی.

حل اللغة: تاجيل: مهلت وركول، اثمان: د ثمن جمع ده. ايفاء: پوره كول، كسوة: د اغوستلو كپړې، اجل: موده، صيانه: حفاظت، غشيان: پتول، يعنى جمع كول، حبلت (س) حبلاً: حامله كيدل، لبن: شيدې، الظئر: مرضعه، شيدې وركونكې ښځه، دهن: تيل، ريحان: خوشبو، ارضعته ارضاعاً: شيدې وركول، ايجاز: په خوله كې دوائى اچول،

تشريح: او په ذكر شوې مسئله كې د خوراك نوم او ددې مقدار بيان كړی. نو دا هم جائز دی. خكه چې جنس او

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا فى العناية (٨\٤٦) والزيلعى (٥\١٢٧) ومجمع الأنهر(٣\٥٣٦) ودرالمنتقى (٣\٥٣٧) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٣٢)_



وصف سره ددې د مقدار بيانولو نه روسته هيڅ جهالت نشته. نو د خوراك ادا كاوه موده بيانول شرط نه دی. خكه چې د خوراك اوصاف خود ثمن اوصاف دی. يعنى كوم خوراك چې متعين او ددې اړخ نه چې اشاره نه وی شوې. بلكه ددې وصف بيان كړې شوې وی. او پخپله ذمه ايخودلې شوې وی. نو هغه ثمن وی. او هم دا د هر كيلي او وزني شي حال دې. نو دا مبيع نه دې. چه په دې كې د ميعاد اړتيا وی. په خلاف د كپړو، چه دا د سلم نه علاوه په يو صورت كې پور وی. په ذمه نه ثابتيږی. بلكه هميشه مبيع وی. او په بيع سلم كې موده بيانول شرط دی. نو هم دغه ډول كه د موصوفه كپړې په عوض ئې رضاعى مور (شيدې وركونكې ښځه) اجرت باندې واخستله. نو موده بيانول به شرط وی. لكه چې روسته راروان دی. البته دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د خوراك ادا كاوه ځائې بيانول شرط دی. كله چې په دې كې بوج اوچتول وی. په خلاف د صاحبينو رحمهما الله د قول، لكه چې د كتاب البيوع په باب السلم كې تير شو.

لِأَنَّ أَوْصَافَهَا أَثْمَانٌ. خكه چې د طعام (خوراك) اوصاف ثمن دی. (وَيُشْتَرَطُ بَيَانُ مَكَانِ الْإِيفَاءِ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ البته د ادا كاوه د ځائې بيانول شرط دی. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رحمهما الله، وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ اودا موږ په بيوع كې ذكر كړی دی.

تشريح: عامو شارحينو د ،،اوصافها،، د مؤنث ضمير مرجع ، په تاويل د حنطة سره طعام ګرځولې دې. خو صاحب د نتائج رحمه الله فرمائی. چه په دې مسئله كې د طعام نه مراد دادې. كوم چې حنطه او غيرحنطه ټولو ته عام دې. نو په دې عام باندې د استدلال په مقام كې خاص سره تاويل كول نه تماميږی. نو حق خبره داده. چه د ضمير مرجع طعام دې. خو دلته ددې د اجرت كيدلو تاويل باندې «فالمعنى أن هذه الأجرة أوصافها أوصاف أثمان».

(وَفِي الْكِسْوَةِ يُشْتَرَطُ بَيَانُ الْأَجَلِ أَيْضًا مَعَ بَيَانِ الْقَدْرِ وَالْجِنْسِ) او په كپړه كې موده بيانول هم شرط دی. مقدار او جنس بيانولو سره. لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَصِيرُ دَيْنًا فِي الذِّمَّةِ إِذَا صَارَ مَبِيعًا، خكه چې كپړې د سرې په ذمه هغه وخت لازميږی. كله چې هغه مبيع شی. وَإِنَّمَا يَصِيرُ مَبِيعًا عِنْدَ الْأَجَلِ كَمَا فِي السَّلَمِ. او مبيع اودا د ميعاد په وخت مبيع وی. لكه څنګه چې سلم كې كيږی.

تشريح: كه شيدې وركونكې ئې ددې د كپړو په عوض اجرت باندې واخستله. نو په دې كې به د سلم د ټولو شرطو اعتبار كولې شی. د جنس او مقدار بيانولو سره به موده بيانول هم شرط وی. خكه چې كپړه د سړی په ذمه هغه وخت لازميږی. كله چې دا مبيع وی. اودا به مبيع هغه وخت وی. كله چې په دې كې موده بيان كړې شی. لكه څنګه چې بيع سلم كې كيږی.

قَالَ (وَلَيْسَ لِلْمُسْتَأْجِرِ) و مستاجر ته ددې حق نشته. أَنْ يَمْنَعَ زَوْجَهَا مِنْ وَطْئِهَا) چې ددې ميړه منع كړی. ددې سره د صحبت كاوه نه. لِأَنَّ الْوَطْءَ حَقُّ الزَّوْجِ خكه چې صحبت د ميړه حق دې. فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِ، نو مستاجر د هغه حق ماتولو باندې قابو نشي موندلې. أَلَا تَرَى آيا نه ګورې أَنَّ لَهُ أَنْ يَفْسَخَ الْإِجَارَةَ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ صِيَانَةً لِحَقِّهِ، چې ميړه ته د اجارې ختمولو اختيار دې. كله چې هغه ته د اجارې علم نه وی. دخپل حق د ساتنه په خاطر، إِلَّا أَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ يَمْنَعُهُ عَنْ غِشْيَانِهَا فِي مَنْزِلِهِ، البته مستاجر پخپل كور كې ددې ميړه د وطى كاوه نه منع كولې شی. لِأَنَّ الْمَنْزِلَ حَقُّهُ خكه چې كور دده حق دې. (فَإِنْ حَبِلَتْ) بيا كه هغه حامله شی. كَانَ لَهُمْ أَنْ يَفْسَخُوا الْإِجَارَةَ إِذَا خَافُوا عَلَى الصَّبِيِّ مِنْ لَبَنِهَا) نو دوی ته د اجارې ختمولو حق دې. كله چې هغوی ته د بچي متعلق خطره وی. ددې په پيو سره. لِأَنَّ لَبَنَ الْحَامِلِ يُفْسِدُ الصَّبِيَّ خكه چې د حاملې شيدې د بچي لپاره نقصان ده وی. وَلِهَذَا كَانَ لَهُمُ الْفَسْخُ إِذَا مَرِضَتْ أَيْضًا په دې وجه دوی ته د فسخ كاوه اختيار وی. كله چې شيدې وركونكې بيماره شی. (وَعَلَيْهَا أَنْ تُصْلِحَ طَعَامَ الصَّبِيِّ)، او په دې باندې لازم دی. د بچي غذا صحيح كول. لِأَنَّ الْعَمَلَ عَلَيْهَا. خكه چې كټور عمل ددې په ذمه لازم دې. وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ فِيمَا لَا نَصَّ عَلَيْهِ حاصل داچه په كومه خبره كې

نص وارد نه وي. الْعُرْفُ فِي مِثْلِ هٰذَا الْبَابِ، هغې كې د عرف اعتبار كولې شي.په داسې معاملاتو كې ، فَمَا جَرَى بِهِ الْعُرْفُ مِنْ غَسْلِ ثِيَابِ الصَّبِيِّ وَإِصْلَاحِ الطَّعَامِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ نو دكومې خبرې چې عرف جاري وي.لكه د بچي كپړې وينځل، دده دخوراك اصلاح كول وغيره. فَهُوَ عَلَى الظِّئْرِ نودا به د پيو وركونكې په ذمه وي. أَمَّا الطَّعَامُ فَعَلَى وَالِدِ الْوَلَدِ،پاتې شو خوراك، نو دا به د بچي په پلار وي. وَمَا ذَكَرَ مُحَمَّدٌ أَنَّ الدُّهْنَ وَالرَّيْحَانَ عَلَى الظِّئْرِ او دا كوم چې امام محمد رحمه الله ذكر كړي دي.چه تيل او خوشبو په پيو وركونكې باندې لازم دي. فَذٰلِكَ مِنْ عَادَةِ أَهْلِ الْكُوفَةِ نودا د كوفې د خلكو عادت باندې دي. (وَإِنْ أَرْضَعَتْهُ فِي الْمُدَّةِ بِلَبَنِ شَاةٍ) وكه دې د اجارې په موده كې د وزه شيدې وركړل (فَلَا أَجْرَ لَهَا) نو ددې لپاره به هيڅ اجرت نه وي. لِأَنَّهَا لَمْ تَأْتِ بِعَمَلٍ مُسْتَحَقٍّ عَلَيْهَا، وَهُوَ الْإِرْضَاعُ،خكه چې كوم كار په دې واجب وو.يعني شيدې وركول، هغه دې اونكړو. فَإِنَّ هٰذَا إِيجَارٌ وَلَيْسَ بِإِرْضَاعٍ،خكه چې دا خو په خوله كې اچول دي.شيدې وركول نه دي. وَإِنَّمَا لَمْ يَجِبِ الْأَجْرُ لِهٰذَا الْمَعْنَى أَنَّهُ اخْتَلَفَ الْعَمَلُ نو په دې وجه چې عمل بدل شو.اجرت نه واجبيږي.

**تشريح:** مستاجر د پيو وركونكې ميړه د وطى كاوه نه نشي منع كولې.خكه چې وطى د هغه حق دې.چه دا مستاجر نشي ختمولې.امام شافعي او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي.( د امام مالك رحمه الله په نيز ميړه ته د مستاجر د رضامندئ نه بغير د وطى كاوه اختيار نشته).نو كه ميړه ته د خپلې ښځې د نوكرئ ( بچي ته په اجرت شيدې وركول) معلوم نه وي.نو هغه د خپل حق د ساتنه په خاطر اجاره فسخ كولې شي.البته (مستاجر) پخپل كور كې د وطى كاوه نه منع كولې شي.خكه چې دا د مستاجر حق دې.

## د جولا او د غلې اوړلو د خر د اجرت مسئلې

قَالَ: (وَمَنْ دَفَعَ إِلَى حَائِكٍ غَزْلًا لِيَنْسِجَهُ بِالنِّصْفِ يوكس يو جولا ته ريښلې ورئ وركړله.چه ددې نه په نيمه باندې كپړه جوړه كړي. فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ. نود جولا لپاره به اجر مثل وي. وَكَذَا إِذَا اسْتَأْجَرَ حِمَارًا دغه ډول كه خر ئې اجاره باندې واخستلو يَحْمِلُ طَعَامًا بِقَفِيزٍ مِنْهُ چې په دې باندې خوراك بار كړي.هم ددې خوراك نه د يو قفيز په عوض، فَالْإِجَارَةُ فَاسِدَةٌ) نو اجاره فاسد ده.

**حل اللغة:** حائك: جولا، غزل: ريښلې شوې ورئ، لينسجه (ن،ض) نسجاً: كپړه جوړول، طحان: ميچن باندې اوړه كونكې، (جرنده كړې) ،ثور: غونې، ليطحن (ف) طحناً: اوړه كول، دقيق: اوړه، منسوج: كپړه جوړه شوې،

**تشريح:** زيد يو جولا ته د كپړې جوړولو لپاره ورئ وركړله.او په جوړولو كې ئې نيمه كپړه كومه چې جوړه او تياره كړئ شي.دده اجرت مقرر كړو.نودا اجاره فاسد ده.نو جولا ته به ددې اجر مثل ملاويږي.خكه چې د اجاره فاسدې هم دا حكم دې.دغه ډول كه يو خر ئې د غلې مخصوص مقدار اوچتولو لپاره اجرت باندې واخستلو.او هم ددې غلې نه ئې يو قفيز مزدوري مقرر كړله.نودا اجاره هم فاسد ده.

احناف، امام مالك، امام شافعي ، ليث بن سعد ، حسن، ابوثور رحمهم الله هم ددې قائل دي.ابن المنذر او ابن عقيل رحمهما الله هم دا اختيار كړې دې.د ابن حزم رحمه الله په قول ابراهيم نخعي رحمه الله دې ته مكروه ونيلى دى.

ددې په خلاف د ابن سيرين، عطاء، يعلى بن حكيم، زهري ، قتاده، اسحاق، ايوب سختياني ،ابن ابي ليلى او د امام احمد رحمهم الله په نيز دې كې هيڅ باك نشته.مبسوط كې دي.چه شمس الائمه حلواني د خپل استاذ قاضي ابوعلي نسفي رحمه الله نه نقل كړى دى.چه هغه به په نسف ښار كې ددې د جواز فتوى وركوله.د بلخ د مشائخو (نصرين يحى ، محمد بن سلمه وغيره) فتوى هم د جواز ده.بيا ئې ونيلي دي.چه زما په نيز اصح هم دادى.كوم چې په كتاب كې ذكر دى.

لِأَنَّهُ جَعَلَ الْأَجْرَ بَعْضَ مَا يَخْرُجُ مِنْ عَمَلِهِ خكه چې ده اجرت ددې شئ يوه برخه مقرر كړې ده.كوم به چې دده په



عمل سره حاصليږي. فَيَصِيرُ فِي مَعْنَى قَفِيزِ الطَّحَّانِ،نودا د قفيز الطحان په معنى كې شو. وَقَدْ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ،(١) حالانكه نبى كريم ﷺ ددې نه منع فرمائيلې ده. وَهُوَ أَنْ يَسْتَأْجِرَ ثَوْرًا او هغه دادې.چه په اجاره باندې يو غونې واخلى. لِيَطْحَنَ لَهُ حِنْطَةً بِقَفِيزٍ مِنْ دَقِيقِهِ. چې دده لپاره غنم اوړه كړي.هم ددې اوړو د يو قفيز په عوض،

**تشريح:** زموږ دليل دادې.چه په ذكر شوې صورت كې اجرت هغه شئ دې.كوم چې به د اجير عمل سره پيدا كيږي.نودا د قفيز الطحان په معنى كې شو.چه ددې په اړه كې په سنن دارقطني ، بيهقي او په مسند ابو يعلى موصلي كې د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه مرفوعاً نقل دي. «نهى عن عسب الفحل و عن قفيز الطحان»علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.د قفيز الطحان تفسير دادې.چه يو غونې اجاره باندې واخلى. چې ميچن تاوهي.او ددې په ذريعه غنم وغيره اوړه كړي.اوكوم اوړه چې حاصل شي.په هغې كې يو قفيز اوړه اجرت مقرر كړي.

حافظ ابن تيميه رحمه الله حديث «نهى عن قفيز الطحان» باطل گرځولې دې.شيخ په موفق المغني كې وائى. «هذا الحديث لا نعرفه و لا يثبت عندنا صحته» ؟

خواب: دادې.چه ① اول خو محدث جليل علامه ابن عقيلي ، دار قطني ، بيهقي ، امام طحاوي او شيخ عبدالحق رحمهم الله ددې حديث نه بنه خبر دى . «و كفى بهم قدوة و العارف حجة على من لم يعرف» ② دويمه دا چې د ابن تيميه د پلار نيكه (قرنيكه) ددې حديث تخريج په منتقى الاخبار كې كړې دې.او پخپله موفق حنبلي په المغنى كې د علامه ابن عقيل اړه كې ليكلي دي.چه هغه هم دا حديث صحيح او قابل د استدلال گنړلو.او هغه سره ددې چې حنبلي دې.خو په دې مسئله كې حنفيه، شافعيه، او مالكيه رحمهم الله سره وو.نو آيا باطل او موضوع احاديث داسې وي ؟

سوال: شيخ ذهبي په ميزان كې د ذكر شوې حديث راوى هشام ابو كليب اړه كې لايعرف ونيلى دى ؟

خواب: ① اول خو حافظ ابن حجر رحمه الله په لسان كتاب كې ليكلي دي.چه هشام ابن حبان په ثقاتو كې ذكر كړې دې.په نيل الاوطار كې د شيخ مغلطائي قول رانقل دې.چه هشام ثقه راوى دې.او دار قطني د هشام په طريق د حديث د تخريج نه روسته سكوت كړې دې.② دويمه داچه هشام ددې حديث په روايت كې يواخې نه دې.بلكه عطاء بن السائب رحمه الله ددې تائيد كړې دې.لكه چې د امام طحاوي رحمه الله په مشكل الآثار كې د عطاء روايت په جيد (مضبوط) سند سره موجود دې.

سوال: د ابن القطان بيان دې.چه ما په سنن دارقطني كې د حديث روايات لټون كاوه نه روسته هم دغه ډول موندلي دي. «نهى عن عسب الفحل و عن قفيز الطحان» نود حديث رفع نه ثابتيږي ؟

خواب: امام طحاوي رحمه الله دا حديث په دوې (دوه) طريق سره مسند او مرفوع روايت كړې دې.په طريق د ،، عطاء بن السائب عن ابن ابى نعم ،، كې دي. «عن النبي ﷺ انه نهى عن عسب التيس و كسب الحجام و قفيز الطحان» او په طريق د ،، سفيان ثوري عن هشام ابى كليب عن ابن ابى نعم ،، كې دي. «نهى رسول الله ﷺ عن عسب الفحل و عن قفيز الطحان» او محدث شهيد عبدالحق هم په الاحكام كې د دار قطني په طريق سره هم دغه ډول ذكر كړې دي.

وَهٰذَا أَصْلٌ كَبِيرٌ يُعْرَفُ بِهِ فَسَادُ كَثِيرٍ مِنَ الْإِجَارَاتِ،اودا يو لوئې دليل دې.چه په دې سره د ډيرو اجاراتو فاسديدل معلوميږي. لَا سِيَّمَا فِي دِيَارِنَا، خاص كر زموږ په ښارونو كې ،

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه قفيز الطحان يا د اجير د عمل نه پيدا شوې شئ كې څه برخه اجرت مقررول، يو لوئې دليل دې.چه په دې سره د ډيرو اجاراتو فاسديدل معلوميږي.مثلاً ① يوكس ئې د يو قفيز

---

(١) من حديث أبي سعيد الخدري رضي الله عنه أخرجه الدارقطني في سننه (٤٧/٣) والبيهقي في سننه الكبرى (٥٥٤١٥)۔

کونخلو نه د تيل اوبنکلو لپاره اجير کړو.اوکوم تيل چې اوخي. هم دهغې نه ئې څه تيل اجرت مقرر کړل.④ يوکس خپله مخکه ددې لپاره ورکړله.چه په دې کې ونې اولگوي.او مخکه او ونې په دوی دواړو کې مشترك وی.⑤ يوکس ئې د مالوچو يا وړئ ريشلو لپاره اجاره باندې واخستلو.او هم دهغه ريشلې شوې مالوچ يا وړئ کې ئې يو رطل اجرت مقرر کړو.نودا واړه صورتونه ناجائز دی.

وَالْمَعْنٰى فِيهِ أَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ عَاجِزٌ عَنْ تَسْلِيمِ الْأَجْرِ او په دې کې راز دادې.چه مستاجر د عقد اجاره په وخت د اجرت سپارلو نه عاجز دې. وَهُوَ بَعْضُ الْمَنْسُوجِ أَوِ الْمَحْمُولِ.او هغه د جوړې شوې کپړې، يا کوم نې چې بار کړې دې،د هغې يوه برخه ده. إِذْ حُصُولُهُ بِفِعْلِ الْأَجِيرِ چې ددې حصول به د اجير په فعل سره کيږی. فَلَا يُعَدُّ هُوَ قَادِرًا بِقُدْرَةِ غَيْرِهِ. نو مستاجر به د بل په قدرت سره قادر نه شمارلې کيږی.

تشريح: يعنی د «فی عن قفيز الطحان» راز دادې.چه مستاجر د اجارې دعقد په وخت د اجرت سپارلو نه عاجز دې.خکه چې اجرت خو په مسئله د وړئ کې د جوړې شوې کپړې، او په مسئله د خر په اجاره اخستلو کې چې کوم بار راوړلې شی.د هغې يوه برخه ده.ادا اجرت به د اجير په فعل سره حاصليږی. نود اجير قادر کيدلو سره به مستاجر قادر نه شمارلې کيږی.

**د نيمې غلې په عوض د نيولې شوې غلې د اجرت حکم**

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا اودا ( د قفيز الطحان مسئله) ددې په خلاف ده. إِذَا اسْتَأْجَرَهُ لِيَحْمِلَ نِصْفَ طَعَامِهِ بِالنِّصْفِ الْآخَرِ حَيْثُ لَا يَجِبُ لَهُ الْأَجْرُ كله چې بوج اوچتونکې په اجاره باندې واخستلو.چه ددې غلې نيم په عوض د پاته نيم بار کړی.او دې رسوی.چه دده لپاره به اجرت واجب نه وی. لِأَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ مَلَكَ الْأَجِيرَ فِي الْحَالِ بِالتَّعْجِيلِ خکه چې مستاجر ده لره د پيشگی اجرت مالك کړو. فَصَارَ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا. نو طعام په دواړو کې مشترك شو. وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا لِحَمْلِ طَعَامٍ مُشْتَرَكٍ بَيْنَهُمَا او کوم سړې چې خپل شريك دمشترك طعام اوچتولو لپاره اجاره باندې واخلی. لَا يَجِبُ الْأَجْرُ نو اجرت نه واجبيږی. لِأَنَّ مَا مِنْ جُزْءٍ يَحْمِلُهُ إِلَّا وَهُوَ عَامِلٌ لِنَفْسِهِ فِيهِ خکه چې هيڅ جزء نشته.چه هغه ئې اوچت کړی.مگردا چې هغه په دې کې د خپل ذات لپاره هم عامل دې. فَلَا يَتَحَقَّقُ تَسْلِيمُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ.نود معقود عليه سپارل به نه متحقق کيږی.

تشريح: مخکې چې دا مسئله ذکر شوه.که يوخر ئې ددې لپاره اجاره باندې واخستلو.چه په دې باندې غله بار کړی.چه ددې اجرت به هم په دې غله کې يو قفيز وی.نو اجاره فاسد ده.دا حکم ددې صورت خلاف دې.کله چې يو بوج اوچتونکې په دې طريقه اجاره باندې واخلی.چه ددې غلې نيمه د پاته نيمې په عوض بار کړی.او دې رسوی.چه په دې صورت کې به هيڅ اجر واجب نه وی.نه اجر مسمی ،او نه اجر مثل.خکه چې دلته کې مستاجر فی الحال اجير د پيشگی اجرت مالك کړلو. «لأن تسليم الأجرة بحكم التعجيل يوجب الملك فی الأجرة» نوداً طعام په دوی دواړو کې مشترك شو.او کوم سړې چې خپل شريك د مشترك طعام اوچتولو لپاره اجاره باندې واخلی.نو هيڅ اجرت نه واجبيږی.خکه چې د غلې کوم جزء هم هغه بار کوی.او راوړی.هغې کې به د خپل ذات لپاره هم عامل وی.نود معقود عليه شئ حواله کول ثابت نشو.خکه چې ده خپل ذاتی منفعت او نه سپارلو،، وفيه خلاف الشافعی رحمه الله ،،

تنبيه: علامه زيلعی رحمه الله په شرح کنز کې دا مسئله سره د دليل نه ذکر کاوه نه روسته فرمائيلی دی.چه په دې کې دوې (دوه) اشکاله دی.① ړومبې دا چې اجاره فاسد ده.او حال دادې.چه زمونږ په نيز اجاره صحيحه کې هم د نفس عقد په ذريعه د اجرت نه مالك کيږی.که هغه دين وی.او که عين وی.نو بيا دلته کې او «لا يجب له الاجر» دواړو قولونو کې منافات دې.خکه چې اجير به هم ددې مالك وی. هغه به په طريقه د اجرت وی.او هرکله چې دده لپاره اجرت واجب نشو.نو بيا به څنگه او په کوم سبب سره مالك وی ؟ ② دوهم دا چې په «لأن المستاجر ملك الأجير فی الحال»



اشکال ځواب دادې.چه دمسئلې وضع په دې صورت کې ده.کله چې مستاجر کل طعام اجير ته د ړومبی سپارلې وی.لکه چې صاحب د نهايه او صاحب د معراج الدرايه رحمهما الله وغيره د نفس مسئله په تحرير کې «ودفع إليه كله و لا اجره له» صراحت کړې دې.اود دوهم اشکال ځواب دادې.چه په دواړو قولونو کې منافات نه منو.خکه چې د «ملك الأجير فی الحال» مطلب دادې.چه د اجير ملك په ابتداء کې د عقد په وجه دې.اود اجرت سپارل په طريقه د تعجيل،او د «لا يجب له الأجر» مطلب دادې.چه هغه د عمل نه وړاندې د عقد د بطلان په وجه د اجرمستحق نه دې.پس ددې نه چې هغه د سپارلو په ذريعه مالك شو.په دې سبب چې د معقود عليه پوره کيدلو نه وړاندې په طعام کې شريك شو. «و لا تنافی بين هذين المعنين»

قَالَ (وَلَا يُجَاوِزُ بِالْأَجْرِ قَفِيزًا) او اجرت به د يو قفيز نه زيات نشي ورکولې. لِأَنَّهُ لَمَّا فَسَدَتِ الْإِجَارَةُ خکه چې هرکله اجاره فاسد شوه. فَالْوَاجِبُ الْأَقَلُّ مِمَّا سُمِّيَ وَمِنْ أَجْرِ الْمِثْلِ نود اجر مثل نه چې کوم کم وی.هغه به واجب وی. لِأَنَّهُ رَضِيَ بِحَطِّ الزِّيَادَةِ خکه چې زياتوالې کمولو باندې هغه پخپله راضی شوې دې.

تشريح: دا تير شوی قول «و كذا إذا استاجر حماراً ليحمل طعاماً بقفيز منه» سره متعلق دې.مطلب دادې.چه د خر په اجاره اخستلو کې به اجرت د يو قفيز نه زيات نشي ورکولې.يعنی کوم اجر مثل چې واجب وی.که هغه د يو قفيز نه کم وی.يا يو قفيز وی.نو هم هغه به ورکولې شی.اوکه د يو قفيز نه زيات وی.نو زياتی مقدار به نشي ورکولې.خکه چې هرکله اجاره فاسده منعقد شوه.نو په بيان شوی او اجرمثل کې چې کوم کم وی.هغه به واجب وی.خکه چې کرايه باندې ورکونکې د يو قفيز نه د زياتی په کمولو باندې پخپله راضی شوې دې،، حيث رضی بالقفيز،،

فائده: نهايه کې دی.چه «لا يجاوز بالأجر قفيزا» کې قفيز لفظ منصوب وئيل د هغه خلگو په قول دې. څوك چې د فعل اسناد جارمجرور اړخ ته جائز گڼړی.اودا قول ضعيف دې.په شرح رضی کې دی.چه دا د کوفيينو او د بعض متاخرينو مذهب دې.

وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَكَا فِي الِاحْتِطَابِ او دا ددې په خلاف دې.کله چې دوې (دوه) سړو په لرگو راټولولو کې شرکت اوکړو. حَيْثُ يَجِبُ الْأَجْرُ بَالِغًا مَا بَلَغَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ؛ چې اجرت به واجب وی.چرته هم چې اورسيږی.د امام محمد رحمه الله په نيز. لِأَنَّ الْمُسَمّٰى هُنَاكَ غَيْرُ مَعْلُومٍ خکه چې دلته کې اجرمسمی غير معلوم دې. فَلَمْ يَصِحَّ الْحَطُّ نو کمول صحيح نشو.

تشريح: مذکوره حکم ددې صورت خلاف دې.کله چې دوې (دوه) سړو په لرگو راټولولو کې شرکت اوکړو.بيا يو کس په ځنگل کې لرگی راجمع کړل.او دوهم کس صرف پنډ(گيډې) اوتړلو.نو راجمع کونکې به د لرگو مالك وی.او پنډ تړونکی ته به صرف اجر مثل ملاويږی.خود امام محمد رحمه الله په نيز چې دا اجرت څومره هم وی،پوره به ملاويږی.خکه چې دلته کې هيڅ اجرت مسمی معلوم نه دې.نو کمول صحيح نشو.اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز د شرکت په وجه هغه د لرگو په نيم قيمت باندې راضی شوې وو.نو اجر مثل به ددې لرگو د نيم قيمت نه زيات نشي ورکولې.اوکه دوی دواړو لرگی راجمع کړل.او دواړو پنډونه هم اوتړل.نو دواړه به برابر شريك وی.

**نان بائی د معلوم مقدار اوړه پخولو لپاره د يوې ورځ په اجرت باندې د نيولو حکم**

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا يو کس يو سړې ددې لپاره اجرت باندې اونيولو. لِيَخْبِزَ لَهُ هٰذِهِ الْعَشَرَةَ الْمَخَاتِيمَ مِنَ الدَّقِيقِ الْيَوْمَ بِدِرْهَمٍ چې دده لپاره ددې لس صاع اوړو نه ډوډئ پخې کړی.نن ورځ د يو درهم په عوض. فَهُوَ فَاسِدٌ، نودا فاسد ده. وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ(1) اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ فِي الْإِجَارَاتِ: او

(1) القول الراجح هو قول أبی حنيفة رحمه الله انظر للتفصيل إلی القول الراجح (۲۳۳\۲)

صاحبینو رحمهما الله په اجارات کي ونیلي دي. فَهُوَ جَائِزٌ چي دا جائز دي.

**تشریح:** مخاتیم د مختوم جمع ده. صاع ته وائی. چه ددې شاهد د ابوسعید خدری رضی الله عنه حدیث دې. «الوسق ستون مختوما» صاع ته مختوم ځکه وائی چه ددې خوله مهر کولې شی. چه زیاتیږی او کمیږی نه. مبسوط کي دی چه مختوم او قفیز یو شی دي. قول کي لفظ د ،،هذه لیخبز،، د فعل مفعول دې او ،،العشرة،، ددې صفت دې او المخاتیم مجرور بالاضافة دې لګه په ،، خمسة الاثواب،، کي ،،اثواب،، د کوفیینو په رائې باندې مجرور دي او ،،الیوم،، د ظرفیت په بناء منصوب دې او ،،بدرهم،، د استاجر سره متعلق دې.

مسئله داده چه زید یو نان بائی ددې لپاره اجرت باندې واخستلو چه هغه نن ورځ د یو درهم په عوض د لس صاع اوړو ډوډئ پخې کړی نو د امام صاحب رحمه الله په نیز دا اجاره فاسد ده. او د مبسوط په کتاب الاجارات کي د صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز ده. ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دي.

لِأَنَّهُ يَجْعَلُ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ عَمَلًا وَيَجْعَلُ ذِكْرَ الْوَقْتِ لِلِاسْتِعْجَالِ تَصْحِيحًا لِلْعَقْدِ ځکه چي عمل معقود علیه او وخت ذکر کول به استعجال (جلتئ) لپاره ګرځولې شی د عقد صحیح کاوه دپاره. فَتَرْتَفِعُ الْجَهَالَةُ. نو جهالت به ختمیږی.

**تشریح:** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې چه ددې عقد صحیح کاوه لپاره به عمل معقود علیه ګرځولې شی. تردې که هغه به نیمه ورځ کي د خپل کار نه فارغ شی. نو هغه ته به پوره اجرت ملاویږی. او که هغه پوره ورځ کي هم د کار نه فارغ نشو. نو راروانه ورځ به دده لپاره کار کول لازمی وی. بهرحال معقود علیه دده عمل دې او عمل معلوم دې نو عقد به جائز وی. ځکه چي اوس دا شبه پاتې نشوه. چه معقود علیه عمل دې او که وخت دې ځکه چي دده عمل معقود علیه ګرځولو سره وخت بیانول صرف د جلتئ په غرض سره بیان شوې دې یعنی دا کار به فوراً (په جلتئ سره) په یوه ورځ کي کوی.

لَهُ أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ مَجْهُولٌ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې چه معقود علیه مجهول ده.

**تشریح:** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې چه دلته کي معقود علیه مجهول ده. او د معقود علیه مجهول کیدل مفسد د عقد وی. نو عقد اجاره به صحیح نه وی. د معقود علیه د جهالت وجه داده. چه مستاجر عمل او وخت دواړه جمع کړې دي. اوس وخت ذکر کول خودا ثابتوی. چه معقود علیه منفعت دې. او عمل ذکر کول دا ښائی چه معقود علیه عمل دې. او په دې دواړو باندې عمل کول ناممکن د. ځکه که معقود علیه عمل وی. نو د کار کاوه نه بغیر به اجرت واجب نه وی. او که معقود علیه منفعت وی. نو اجیر چي کله خپل ځان پیش کړی نو اجرت به واجب وی. اګرچه هغه هیڅ کار نه وی کړې. او په دې سلسله کي د خلګو مقصدونه مختلف وی نو وخت او عمل کي یو هم معقود علیه کیدلو لپاره نشی متعین کیدلې. ځکه چي تعارض موجود دې او ترجیح مفقود ده. بیا د عمل په معقود علیه کیدلو کي د مستاجر نفع، او د منفعت معقود علیه کیدلو کي د اجیر نفع ده. نو یقیناً چي روسته به جګړه پیدا کیږی. ځکه چي ورځ تیریدو باندې نان بائی خپل پوره اجرت طلب کوی. اګرچه د لس صاع اوړو پخولو کار نې پوره کړې نه وی. او مستاجر به دا کار معقود علیه ګرځوی. او د کار پوره کاوه نه بغیر به د اجرت ور کاوه نه انکار کوی. نو جګړه به پیدا کیږی.

لِأَنَّ ذِكْرَ الْوَقْتِ يُوجِبُ كَوْنَ الْمَنْفَعَةِ مَعْقُودًا عَلَيْهَا ځکه چي وخت بیانول واجبوی. د منفعت معقود علیه کیدل، وَذِكْرُ الْعَمَلِ يُوجِبُ كَوْنَهُ مَعْقُودًا عَلَيْهِ او عمل ذکر کول واجبوی. د کار معقود علیه کیدل،

**تشریح:** پوهیدل پکار دی. که د روټو پخولو والا نې د یو من اوړو پخولو لپاره په دې شرط اجاره باندې واخستلو. چه ددې کار نه هم نن فارغ شی. نو دا اجاره بالاجماع جائز ده. ځکه چي په دې کي وخت شرط دې معقود علیه شرط نه دې. او که یو درزی نې په دې طریقه اجاره باندې واخستلو. که ته دا هم نن اوګنډې نو یو درهم به ملاویږی او که صباله نې ګنډې نو نصف درهم به ملاویږی. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به رومبې شرط جائز وی. او د وخت استعمال به صرف استعجال (جلتئ) لپاره وی. د دوهم شرط د قرینې



په وجه.

بیا دا خبره چي وخت ذکر کول د استعجال لپاره دی. او که د وخت کیدلو (یعنی د مودې) بیانولو لپاره دی. نو په دې اړه کي بعضو حضراتو دا قاعده بیان کړې ده. چه وخت او عمل دواړو ذکر کاوه سره به عقد هغه وخت فاسدیږی. کله چي دا د اجرت بیانولو نه وړاندې ذکر کړی. او که په دې (وخت او عمل) کي نې یو ذکر کړو. او هم ددې سره نې اجرت ذکر کړو. (حتی تم العقد). ددې نه روسته نې دوهم ذکر کړو. نو عقد به فاسد نه وی. مثلاً که ده داسې اوونیل. «إستاجرتك هذا اليوم بدرهم على أن تخبز لى هذا القفيز من الدقيق» نو عقد به جائز وی. او که ده داسې اوونیل. «إستاجرتك لتخبز لى هذا القفيز من الدقيق اليوم بدرهم» یا نې داسې اوونیل «إستاجرتك اليوم لتخبز لى هذا الدقيق بدرهم» نو په دې صورت کي به عقد فاسد وی.

وَلَا تَرْجِيحَ او هیڅ یو ته ترجیح نشته. وَنَفْعُ الْمُسْتَأْجِرِ فِي الثَّانِي اود مستاجر نفع په دوهم صورت کي ده. وَنَفْعُ الْأَجِيرِ فِي الْأَوَّلِ اود اجیر نفع په رومبی صورت کي ده. فَيُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ. نو دا به جګړې پورې رسوی. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت دې. أَنَّهُ يَصِحُّ الْإِجَارَةُ إِذَا قَالَ: فِي الْيَوْمِ، چي اجاره به صحیح وی. کله چي ده فی الیوم (نن ورځ) ونیلی وی. وَقَدْ سَمَّى عَمَلًا او کار نې بیان کړې وی. لِأَنَّهُ لِلظَّرْفِ ځکه چي دا د ظرف لپاره ده. فَكَانَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ الْعَمَلَ، نو معقود علیه عمل شو. بِخِلَافِ قَوْلِهِ الْيَوْمَ په خلاف دده د قول ،،الیوم،، وَقَدْ مَرَّ مِثْلُهُ فِي الطَّلَاقِ او ددې مثل په طلاق کي تیر شو.

**تشریح:** په دې باندې څوك دا ونیلی شی. چه عمل مقدم ذکر کول، ددې امر لپاره مرجح کیدای شی. چه عمل معقود علیه دې. لکه چي فقهاؤ په مسئله د راعی (شپونکی) کي ونیلي دی. که مستاجر موده او عمل دواړه ذکر کول جمع کړل. نو په دې کي چي کوم مقدم ذکر کړی. هم د هغې اعتبار به کولې شی.

### مځکه د کوډ کولو، کرلو او اوبه خور لپاره په کرایه د اخستلو حکم

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا عَلَى أَنْ يَكْرُبَهَا وَيَزْرَعَهَا أَوْ يَسْقِيَهَا وَيَزْرَعَهَا) یو کس مځکه په اجاره باندې په دې شرط واخستله. چه دا به اړه وی (یعنی کوډ کوی به)، فصل به کری، او اوبه خور به کوی. (فَهُوَ جَائِزٌ) نو دا جائز دی. لِأَنَّ الزِّرَاعَةَ مُسْتَحَقَّةٌ بِالْعَقْدِ، ځکه چي عقد سره د کروندې استحقاق اوشو. وَلَا تَتَأَتَّى الزِّرَاعَةُ إِلَّا بِالسَّقْيِ وَالْكِرَابِ. او کرونده نشی کیدای مګر په اوبه خور او اړولو (کوډ کولو) سره. فَكَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُسْتَحَقًّا. نو په دې کي هر یو مستحق شو. وَكُلُّ شَرْطٍ هَذِهِ صِفَتُهُ يَكُونُ مِنْ مُقْتَضَيَاتِ الْعَقْدِ، او هر هغه شرط چي د هغې صفت دا وی. هغه د عقد د تقاضو څخه وی. فَذِكْرُهُ لَا يُوجِبُ الْفَسَادَ نو ددې ذکر کول، به موجب د فساد نه وی.

**حل اللغة:** یکربها (ن) کرباً: مځکه اړول (کوډ کول)، یسقیها (ض) سقیاً: اوبه کول، یثنیها تثنیة: دوباره کول، یکری (ض) کرباً: ویاله کنستل، یسرقنها: کهاد، سره، ډیران، اثر: نشان، ربیع: سرسبز پیداوار، جداول: د جدول جمع نالئ، لختی،

**تشریح:** زید یوه مځکه په دې شرط په ټیکه واخستله. چه په دې کي به کوډ کوم. او ددې اوبه خور به کوم او فصل به کرم. نو دا صحیح ده. ځکه چي عقد اجاره سره ده ته د کروندې استحقاق حاصل شوې دې. او کرونده د کوډ او اوبه خور نه بغیر نه کیږی. نو کوډ کول اود زمکې اوبه خور کول هم مستحق بالعقد شو. اودا شرط د عقد د مقتضاء خلاف نشو. نو عقد اجاره صحیح شوه.

(فَإِنِ اشْتَرَطَ أَنْ يُثَنِّيَهَا) لیته که دا شرط نې اولګولو. چه مځکه به دوباره اړه وی، (أَوْ يُكْرِيَ أَنْهَارَهَا) یا ددې نهرونه اوکنې، (أَوْ يُسَرْقِنَهَا) یا به په دې کي کهاد (یعنی سره یا ډیران) اچوی. (فَهُوَ فَاسِدٌ) نو دا شرط فاسد دي. لِأَنَّهُ يَبْقَى أَثَرُهُ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْمُدَّةِ، ځکه چي ددې اثر د مودې تیریدلو نه روسته هم پاتې کیږی. وَأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ مُقْتَضَيَاتِ الْعَقْدِ، اودا د عقد د مقتضیاتو څخه هم نه دې. وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ. او په دې کي د یو نفع هم

ده. وَمَا هَذَا حَالُهُ يُوجِبُ الْفَسَادَ اود كوم شرط چې دا حال وي. هغه به موجب د فساد وي.

تشریح: اوكه دا شرط ئې اوكړو چه د زمكې ګرځولو (او واپس كولو) په وخت دوباره ګوډ اوكړي. يا مكرر ګوډ اوكړي. يا ددې نهرونه اوكنې. يا په دې كې كهاد (سره، ډيران) واچوي نو په دې صورت كې به اجاره فاسد وي. ځكه چې ددې كارونو فائده او اثر د اجارې موده تيريدلو نه روسته هم پاته پاتې كيږي. اودا دعقد د مقتضياتو څخه هم نه دی. بيا په دې كې د احد المتعاقدين يعنى د زمكې د مالك فائده هم ده. او داسې شرط د عقد د فساد موجب وي.

لِأَنَّ مُؤَجِّرَ الْأَرْضِ يَصِيرُ مُسْتَأْجِرًا مَنَافِعَ الْأَجِيرِ او په دې وجه هم چې مخكه په اجاره باندې وركونكې به د اجير منافع اجرت باندې اخستونكې وي. عَلَى وَجْهٍ يَبْقَى بَعْدَ الْمُدَّةِ په داسې طريقه چې دده منفعت د مودې نه روسته پاته پاتې كيږي. فَيَصِيرُ صَفْقَتَانِ فِي صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ نو دا عقد ګويا په يوه صفقه كې دوې (دوه) صفقې شوې. وَهُوَ مَنْهِيٌّ عَنْهُ. حالانكه دا ممنوع دی.

تشریح: د عقد د فساد دوهم دليل دادې. چه د زمكې مالك د مستاجر منافع په داسې طريقه اجاره اخستونكې شو. چه ددې منفعت د اجارې مودې نه روسته هم پاته پاتې كيږي. نو دا عقد ګويا په يوه صفقه كې دوې (دوه) صفقې شوې. حالانكه دا ممنوع دی. لكه چې امام احمد رحمه الله په مسند كې د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روايت كړې دی. «نهى رسول الله ﷺ عن صفقتين فى صفقة واحدة».

تنبيه: شيخ سعدي چلپي فرمائيلى دی. چه «لأن موجر الأرض» د اصل مدعا دوهم دليل دې. په دې وجه «لأن موجر الأرض» په واؤ سره پكار دې. (لكه چې په بعض نسخو كې واؤ موجود دې) خو صاحب د نتائج رحمه الله «لأن موجر الأرض» د «و ما هذا حاله يوجب الفساد» دليل منلې دې. د اصل مدعا دليل ئې نه دې منلى. ،،فالظاهر ترك الواؤ،،

ثُمَّ قِيلَ: بيا ونيلى شوي دی. الْمُرَادُ بِالتَّثْنِيَةِ أَنْ يَرُدَّهَا مَكْرُوبَةً چې د تثنيه نه مراد دادې. چه اړولې شوې مخكه واپس كړي. وَلَا شُبْهَةَ فِي فَسَادِهِ. او ددې په فساد كې هيڅ شك نشته. وَقِيلَ او ونيلى شوي دی. أَنْ يَكْرِبَهَا مَرَّتَيْنِ، چې ددې نه مراد دادې. چه دوباره واړه وي. او كرونده اوكړي. وَهَذَا فِي مَوْضِعٍ تُخْرِجُ الْأَرْضُ الرِّيعَ بِالْكِرَابِ مَرَّةً وَاحِدَةً نو حكم د فساد به په داسې موقع كې وي. چرته چې په يو خل اړولو (ګوډ كولو) سره پيدا وار حاصليږي. وَالْمُدَّةُ سَنَةٌ وَاحِدَةٌ، او د اجارې موده هم يو كال وي. وَإِنْ كَانَتْ ثَلَاثَ سِنِينَ كه موده درې كاله وي. لَا تَبْقَى مَنْفَعَتُهُ، نو ددې منفعت پاته نه پاتې كيږي.

تشریح: بيا د ،، تثنيه ارض،، نه مراد د بعضو په قول دادې. چه مستاجر د زمكې مالك ته ګوډ شوې مخكه واپس كړي. دا شرط بلا شبه عقد فاسدونكې دې. ځكه چې دې كې ښكاره د زمكې د مالك فائده ده. بعضو حضراتو د ،، تثنيه ارض،، دا معنى كړې ده. چه مخكه دوباره ګوډ كړي. او فصل اوكړي. په دې صورت كې به د فاسديدلو حكم په داسې مقام وي. چرته چې په يو خل اړولو سره پيدا وار حاصليږي. اود عقد اجاره موده هم يو كال وي. كه دا مخكه په داسې مقام كې وي. چرته چې د پيداوار حاصلولو لپاره د دوباره اړولو ارتيا وي. نو دا شرط به مفسد د عقد نه وي. بلكه مقتضاء د عقد به وي. دغه ډول كه د اجارې موده درې كاله وي. بيا به هم عقد نه فاسديږي. ځكه چې ددې منفعت پاته نه پاتې كيږي.

وَلَيْسَ الْمُرَادُ بِكَرْيِ الْأَنْهَارِ الْجَدَاوِلَ او په نهرونو كنستلو سره مراد نالې (لختي) نه دی. بَلِ الْمُرَادُ مِنْهَا الْأَنْهَارُ الْعِظَامُ بلكه ددې نه لوئې نهرونه مراد دی. هُوَ الصَّحِيحُ اهم دا صحيح ده. لِأَنَّهُ تَبْقَى مَنْفَعَتُهُ فِي الْعَامِ الْقَابِلِ ځكه چې ددې منفعت راراوان كاله پورې پاته پاتې كيږي.

تشریح: اود نهرونو كنستلو او صفاكولو نه مراد واړه نهرونه نه دی. يعنى نالې او لختي نه دی. بلكه ددې نه



لوئې نهرونه مراد دی. ځكه چې ددې منفعت راروان كاله پورې پاته پاتې كيږي. علامه مرغيناني رحمه الله په ،، وهو الصحيح،، ونيلو سره د شيخ الاسلام خواهرزاده رحمه الله دقول نه احتراز كړې دې. چه د انهار نه مراد جداول (نالې) دی. چه هغوى به انهار او جداول دواړه يوشان ګڼل. او هم ددې فتوى به ئې وركوله. صاحب د محيط هم دا اختيار كړې دې. وجه د احتراز داده. چه د نالو (لختو) منفعت د اجارې د مودې نه روسته پورې پاته نه پاتې كيږي. نو په دې كې ښكاره د فساد هيڅ وجه نشته.

## د زمكې په بدله كښې مځكه په اجاره باندې داخستلو حكم

قَالَ: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا كه مځكه ئې اجاره باندې واخستله. لِيَزْرَعَهَا بِزِرَاعَةِ أَرْضٍ أُخْرَى چې په دې كې كرونده اوكړي. د بلې زمكې د كروندې په عوض. فَلَا خَيْرَ فِيهِ) نو په دې كې هيڅ بهترى نشته.

تشریح: زيد د بكر مځكه د كروندې لپاره په دې شرط واخستله. چه ددې په عوض كې به هغه د زيد مځكه كري. نو په دې كې هيڅ خير نشته. يعنى ناجائز دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعى رحمه الله فرمائى. هُوَ جَائِزٌ، چې دا جائز ده. وَعَلَى هَذَا إِجَارَةُ السُّكْنَى بِالسُّكْنَى او هم په دې اختلاف ده د اوسيدلو اجاره، د اوسيدلو په عوض. وَاللُّبْسِ بِاللُّبْسِ اود اغوستلو اجاره د اغوستلو په عوض. وَالرُّكُوبِ بِالرُّكُوبِ. او د سوارلۍ اجاره د سوارلۍ په عوض.

تشریح: د امام مالك او امام شافعى رحمهما الله په نيز جائز دی. دغه ډول كه يو كس خپل كور كرايه باندې وركړو. او اجرت ئې دا مقرر كړو. چه كرايه دار خپل كور ماته د اوسيدلو لپاره راكړي. يا يوه كپړه اغوستلو لپاره د بلې كپړې اغوستلو په عوض، يا د يو ځاروى سوارلۍ د بل ځاروى د څوارلۍ په عوض اجاره باندې واخستلو. نو په دې كې هم دا اختلاف دی.

لِأَنَّ الْمَنَافِعَ بِمَنْزِلَةِ الْأَعْيَانِ د امام شافعى رحمه الله دليل دادې. چه منافع په منزله د اعيان دی. حَتَّى جَازَتِ الْإِجَارَةُ بِأُجْرَةٍ دَيْنٍ تردې چې اجاره پور اجرت باندې جائز كيږي. وَلَا يَصِيرُ دَيْنًا بِدَيْنٍ، اود پور عوض پور سره نه كيږي.

تشریح: د امام شافعى رحمه الله دليل دادې. چه منافع په منزله د اعيان دی. تردې چې اجاره په پور اجرت باندې جائز كيږي. اودا د دين عوض په دين سره نه كيږي. نود منع كاوه هيڅ وجه نشته.

وَلَنَا زموږ دليل دادې. أَنَّ الْجِنْسَ بِانْفِرَادِهِ يُحَرِّمُ النَّسَاءَ عِنْدَنَا چې خانله جنس پور حرامه وي. زموږ په نيز. فَصَارَ كَبَيْعِ الْقُوهِيِّ بِالْقُوهِيِّ نَسِيئَةً نودا د قوهستانى كپړې د قوهستانى كپړې په عوض د پور خرڅولو پشان شو. وَإِلَى هَذَا أَشَارَ مُحَمَّدٌ، امام محمد رحمه الله هم دې اړخ ته اشاره كړې ده. وَلِأَنَّ الْإِجَارَةَ جُوِّزَتْ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ لِلْحَاجَةِ او ځكه چې اجاره خلاف قياس صرف د اړتيا په وجه جائز ګرځولې شوې ده. وَلَا حَاجَةَ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ، اود جنس د اتحاد په وخت هيڅ اړتيا نشته. بِخِلَافِ مَا إِذَا اخْتَلَفَ جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ په خلاف ددې كله چې جنس منفعت مختلف وي.

تشریح: زموږ دليل دادې. كه صرف جنسيت موجود وي. نو زموږ په نيز پور حراميږي. نو داسې شوه. لكه چې د قوهستانى كپړې په عوض پور خرڅ كړې شي. چه دا جائز نه دی. «لأن أحد وصفى علة الربوا كاف فى حرمة النساء».

## په مشترك غله كښې د يو بل خر په اجاره باندې د اخستلو حكم

قَالَ: (وَإِذَا كَانَ الطَّعَامُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ غله په دوې (دوه) كسانو كې مشترك ده. فَاسْتَأْجَرَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ أَوْ حِمَارَ صَاحِبِهِ عَلَى أَنْ يَحْمِلَ نَصِيبَهُ نو په دوى كې هريو دوهم شرك يا دده خر په دې شرط اجاره باندې واخستلو. چه دده برخه اوچته كړي. فَحَمَلَ الطَّعَامَ كُلَّهُ هغه ټوله غله اوچته كړه. او وې رسوله. فَلَا أَجْرَ لَهُ) نو دده لپاره به هيڅ

اجرت نه وي.

تشريح: غله د دوو (دوه) سړو په منځ کې مشترك ده.په دوى كې هريو شريك دوهم شريكوال، يا د هغه خر د خپلې برخې (حصې) غلې اوچتولو لپاره اجاره باندې واخستلو.او هغه ټوله غله بار كړله.او وې رسوله.نو زموږ په نيز به هغه ته مزدوري نه ملاويږي.نه اجر مسمى ،او نه اجر مثل.د آئمه ثلاثه په نيز اجاره مذكوره صحيح ده.په دې وجه ددوى په نيز اوچتونكي ته به مزدوري ملاويږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ :امام شافعي رحمه الله فرمائي. لَهُ الْمُسَمَّى ، چې دده لپاره به اجر مسمى وي. لِأَنَّ الْمَنْفَعَةَ عَيْنٌ عِنْدَهُ خكه چې منفعت ددوى په نيز په منزله د عين دي. وَبَيْعُ الْعَيْنِ شَائِعًا جَائِزٌ،اود غير مقسوم مال عين خرڅول جائز دي. وَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ دَارًا نو دا داسې شوه.لكه چې د غلې ايخودلو لپاره ئې يو كور كرايه باندې واخستلو. مُشْتَرَكَةً بَيْنَهُ وَبَيْنَ غَيْرِهِ لِيَضَعَ فِيهَا الطَّعَامَ چې دا دده او د بل كس په منځ كې مشترك دي. أَوْ عَبْدًا مُشْتَرَكًا يا ئې مشترك غلام اجاره باندې واخستلو. لِيَخِيطَ لَهُ الثِّيَابَ چې دده لپاره كپړه اوگنډي.

تشريح: وجه داده.چه ددوى په نيز منفعت په منزله د عين دي.اود عين مشاع بيع جائز ده.نود مشاع اجاره به هم جائز وي.نودا داسې شوه.لكه چې د غلې ايخودلو لپاره مشترك كور، يا د كپړې گنډلو لپاره مشترك غلام اجاره باندې واخستلو.نو اجرت واجبيږي.

وَلَنَا زموږ دليل دادې. أَنَّهُ اسْتَأْجَرَهُ لِعَمَلٍ لَا وُجُودَ لَهُ ، چې ده د داسې عمل لپاره اجاره باندې واخستلو.چه ددې وجود نشته. لِأَنَّ الْحَمْلَ فِعْلٌ حِسِّيٌّ لَا يُتَصَوَّرُ فِي الشَّائِعِ،خكه چې بوج اوچتول حسي فعل دې.چه دا په غير مقسوم كې نه متصور كيږي. بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع، لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ حُكْمِيٌّ ،خكه چې دا حكمي تصرف دې. وَإِذَا لَمْ يُتَصَوَّرْ تَسْلِيمُ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او هركله چې معقود عليه سپارل متصور نشو. لَا يَجِبُ الْأَجْرُ نو اجرت به واجب نه وي. وَلِأَنَّ مَا مِنْ جُزْءٍ يَحْمِلُهُ إِلَّا وَهُوَ شَرِيكٌ فِيهِ او خكه چې هيڅ جزء نشته.چه هغه دې اوچت كړي.خودا چې دې په هغې كې شريك دې. فَيَكُونُ عَامِلًا لِنَفْسِهِ نو دې د خپل ځان لپاره عامل شو. فَلَا يَتَحَقَّقُ التَّسْلِيمُ، نو سپارل به نه متحقق كيږي.

تشريح: زموږ دليل دادې.چه احد الشريكين بل شريك د داسې عمل لپاره اجرت باندې اخستې دې.چه په دې كې توپير كول ممكن نه دي.خكه چې د بوج اوچتولو عمل حسي فعل دې.چه دا په امر شائع كې نه متصور كيږي.نو معقود عليه سپارل غير متصور شو.نو اجرت به واجب نه وي.په خلاف د بيع، چې دا تصرف حكمي (شرعي) دې.او په دې وجه هم چې د غلې هر هغه جزء كوم ئې چې منتقل كړې دې.هغې كې دې پخپله هم شريك دې.نو خپل ځان لپاره عامل شو.نو سپارل به نه متحقق كيږي.په دې وجه به اجرت نه واجبيږي.

بِخِلَافِ الدَّارِ الْمُشْتَرَكَةِ په خلاف د مشترك كور، لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ هُنَالِكَ الْمَنَافِعُ وَيَتَحَقَّقُ تَسْلِيمُهَا بِدُونِ وَضْعِ الطَّعَامِ، خكه چې هلته كې معقود عليه منافع دي.چه ددې سپارل ممكن دي.د غلې ايخودلو نه بغير، وَبِخِلَافِ الْعَبْدِ او په خلاف د غلام، لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ إِنَّمَا هُوَ مِلْكُ نَصِيبِ صَاحِبِهِ خكه چې معقود عليه صرف د بل د ملك برخه ده. وَأَنَّهُ أَمْرٌ حُكْمِيٌّ او ملك امر حكمي دې. يُمْكِنُ إِيقَاعُهُ فِي الشَّائِعِ چې دا په غيرمقسوم كې واقع كيداې شي.

تشريح: د امام شافعي رحمه الله د قياس ځواب دادې.چه په خلاف د داسې كور،چه هغه دده او د بل په منځ كې مشترك وي.چه هغې كې كرايه خكه واجبيږي.چه هلته كې معقود عليه منافع وي.چه د هغې د غلې ايخودلو نه بغير سپارل ممكن دي.نو په غلې ايخودل سره سپارل به په درجه اولى ممكن وي.او په خلاف د مشترك غلام،چه په دې كې معقود عليه صرف د بل د ملك برخه ده.او ملك امر حكمي دې.چه دا د تقسيمولو نه بغير واقع كيداې شي.



## د كرلو د څيز ذكر كولو نه بغير مځكه اجاره باندې د اخستلو حكم

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا يوكس يوه مځكه اجاره باندې واخستله وَلَمْ يَذْكُرْ أَنَّهُ يَزْرَعُهَا اودا ئې بيان نكړل چه په دې كې به كرونده كوي. أَوْ أَيَّ شَيْءٍ يَزْرَعُهَا يا د څه شي كرونده به كوي. فَالْإِجَارَةُ فَاسِدَةٌ نو اجاره فاسد ده. لِأَنَّ الْأَرْضَ تُسْتَأْجَرُ لِلزِّرَاعَةِ وَلِغَيْرِهَا،خكه چې مځكه د كروندې لپاره هم اجاره باندې اخستلې شي.او ددې نه علاوه لپاره هم. وَكَذَا مَا يُزْرَعُ فِيهَا مُخْتَلِفٌ،په دې كې چې څه شئ كرلې شي.هغه مختلف دي. فَمِنْهُ مَا يَضُرُّ بِالْأَرْضِ وَمَا لَا يَضُرُّهَا غَيْرُهُ، چې بعض شيان زمكې ته نقصان وركوي.او بعض شيان زمكې لپاره نقصان ده نه وي. فَلَمْ يَكُنِ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ مَعْلُومًا نو معقود عليه معلوم نشو.

تشريح: يو سړي يوه مځكه اجاره باندې واخستله.اودا ئې بيان نكړل.چه په دې كې به فصل كري.يا به بل څه كوي.او يا به د غنمو فصل كري.يا د بل څه څيز.نو اجاره فاسد ده.(كه موجر عام اجازت نه وي وركړې.گنې جائز به وي).خكه چې مځكه كې صرف كرونده نه كيږي.بلكه تعمير هم كيداې شي.وني وغيره هم لگولې شي.د سامان د ساتنه لپاره اخستلې شي.بيا كرونده هم د مختلفو څيزونو كيداې شي.چه په دې كې بعض شيان داسې دي.چه هغه د هغې كرونده زمكې لپاره نقصان ده وي.لكه رطبه (گندنا)، سبزيانې (تركاريانې)، او بعض شيان دومره نقصان ده نه وي.نو معقود عليه مجهول شو.نو اجاره به صحيح نه وي.امام شافعي او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي.

فَإِنْ زَرَعَهَا بيا كه ده مځكه اوكرله. وَمَضَى الْأَجَلُ او موده تيره شوه. فَلَهُ الْمُسَمَّى نو دده لپاره به اجر مسمى وي. وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ. اودا استحسان دې. وَفِي الْقِيَاسِ: لَا يَجُوزُ قياس كې جائز نه دي. وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ اوهم دا د امام زفر رحمه الله قول دې. لِأَنَّهُ وَقَعَ فَاسِدًا خكه چې عقد فاسد واقع شوې وو. فَلَا يَنْقَلِبُ جَائِزًا. نو په جواز باندې به نه بدليږي. وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان دادې. أَنَّ الْجَهَالَةَ ارْتَفَعَتْ قَبْلَ تَمَامِ الْعَقْدِ چې جهالت د عقد ختميدلو نه وړاندې ختم شو. فَيَنْقَلِبُ جَائِزًا،نو په جواز به بدليږي. كَمَا إِذَا ارْتَفَعَتْ فِي حَالَةِ الْعَقْدِ، وَصَارَ كَمَا إِذَا أَسْقَطَ الْأَجَلَ الْمَجْهُولَ قَبْلَ مُضِيِّهِ وَالْخِيَارَ الزَّائِدَ فِي الْمُدَّةِ.

تشريح: البته كه ددې نه روسته مستاجر په دې كې كرونده اوكړله.او موده هم تيره شوه.نو استحساناً به اجاره صحيح وي.خود امام زفر، امام شافعي ،اود امام احمد رحمهم الله په نيز به اوس هم صحيح نه وي.اود قياس تقاضه هم داده.خكه چې دا ابتداء كې فاسد واقع شوې ده.نودا اجاره به صحيح عقد ارخ ته نه واپس كيږي.وجه د استحسان داده.چه د عقد موده مكمل كيدلو نه وړاندې د معقود عليه جهالت ختم شو يعني دا معلومه شوه.چه ده مځكه د كروندې لپاره اخستې وه.او كوم څه چې ده كرلي دي هغه هم معلوم شو.بيا د زمكې مالك دومره وخته پورې خاموش پاتې شو.ترڅو چې موده تيره شوه.په دې وجه به اجاره عقد صحيح ارخ ته واپس كيږي.لكه كه د عقد په حالت كې جهالت لرې شي.نو بالاتفاق جائز كيږي.نودا داسې شوه.لكه چې په بيع كې مجهول موده تيريدلو نه وړاندې ساقط كړي.يا خيارشرط كې د دريو ورځو نه زياتوالې په دريو ورځو كې دننه ساقط كړي.نودواړه جائز كيږي. ﴿وما في المتن أن عند محمد رحمه الله لا يعود صحيحا هو القياس مخالف لأكثر الكتب﴾

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ حِمَارًا إِلَى بَغْدَادَ بِدِرْهَمٍ يوكس يو خر بغداد پورې د يو درهم په عوض اجاره باندې واخستلو وَلَمْ يُسَمِّ مَا يَحْمِلُ عَلَيْهِ او څه به چې په دې بار كوي.هغه ئې بيان نكړل. فَحَمَلَ مَا يَحْمِلُ النَّاسُ بيا هغه داسې شئ باركړو.كوم چې خلگ بار كوي. فَنَفَقَ فِي نِصْفِ الطَّرِيقِ بيا خر لاره كې مړ شو. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو په ده به تاوان نه وي. لِأَنَّ الْعَيْنَ الْمُسْتَأْجَرَةَ أَمَانَةٌ فِي يَدِ الْمُسْتَأْجِرِ،خكه چې اجاره باندې اخستې شوې شئ مستاجر سره امانت وي. وَإِنْ كَانَتِ الْإِجَارَةُ فَاسِدَةً اگرچه اجاره فاسده وي.

**تشريح:** يوكس يو خر بغداد پورې د يو درهم په عوض اجاره باندې واخستلو. اودا ئې بيان نكړل. چه په دې به څه بار كوى. بيا هغه داسې شئ بار كړو. كوم چې په عامه توګه (عام طور) باندې خلګ بار كوى. ددې باوجود خر لاره كې مړشو. نو هغه به ضامن نه وى. ځكه چې اجاره باندې اخستې شوې شئ مستاجر سره امانت وى. او امانت كې د تعدى (او زياتى) كاوه نه بغير ضمان (او تاوان) نه وى. البته كه مستاجر مخالفت اوكړى. نو هغه غاصب ګنړلې كيږى. او ضامن كيږى. او دلته كې هغه د خلګو د عادت خلاف هيڅ عمل نه دې كړې. نو هغه غاصب نشى كيدې. خود بار كولو شئ چونكه ابتداء نه په عقد كې نه وو بيان شوې. په دې وجه اجاره فاسد واقع شوې وه. ځكه چې بار كونكې بوج مجهول وو. اګرچه د بار كاوه نه روسته دا جهالت ختم شو.

| |
|---|
| (فَإِنْ بَلَغَ بَغْدَادَ) بيا كه ده بغداد پورې اورسولو. (فَلَهُ الْأَجْرُ الْمُسَمَّى اسْتِحْسَانًا) نو دده لپاره به اجر مسمى وى. استحسانا. عَلَى مَا ذَكَرْنَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى لكه څنګه چې مونږه وړاندې مسيله كې ذكر كړل. (وَإِنْ اخْتَصَمَا قَبْلَ أَنْ يَحْمِلَ عَلَيْهِ) او كه دواړو خپلو كې جګړه اوكړله. د بوج بار كاوه نه وړاندې. وَفِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى قَبْلَ أَنْ يَزْرَعَ او په رومبئ مسئله كې د كروندې نه وړاندې. (نُقِضَتِ الْإِجَارَةُ) دَفْعًا لِلْفَسَادِ نو اجاره به ماتولې شى. د فساد لرې كاوه دپاره. إِذِ الْفَسَادُ قَائِمٌ بَعْدُ ځكه چې فساد اوسه پورې قائم دې. |

**تشريح:** بيا كه ده بغداد پورې اورسولو. نو استحسانا به اجر مسمى ملاويږى. او كه په دې مسئله د بوج بار كاوه نه وړاندې، او زمكې په مسئله كې د كروندې نه وړاندې دوى دواړه خپلو كې جګړه اوكړى. نود فساد لرې كاوه په خاطر به اجاره ماتولې شى. ځكه چې فساد اوسه پورې قائم دې.

## بَابُ ضَمَانِ الْأَجِيرِ

ژباړه: (دا) باب د اجير د ضمانت (په بيان كې) دې.

**تشريح:** دا جارې انواع (صحيح او فاسد) بيانولو نه پس، د ضمان مسائل بيانوى. چه دا من جمله د هغه عوارضو (او اسبابو) څخه دې. كوم چې په عقد اجاره باندې مرتب كيږى. په غاية البيان ا معراج الدرايه كې وجه د مناسبت هم داسې ذكر ده.

لفظ د اجير په قول د امام مطرزى رحمه الله د فعيل په وزن دې. په معنى د مفاعل سره. لكه چې جليس او نديم دى. صاحب د معراج ليكلى دى. «و الأجير فعيل بمعنى مفاعل من باب آجر و إسم فاعل من مؤجر لا مؤاجر» په دې باندې علامه عينى رحمه الله ونيلى دى. چه دا غلط دى. ځكه چې فعيل په معنى د فاعل ثلاثى څخه نه دې. د مزيد نه نه دې. صاحب د نتائج رحمه الله فرمائى. چه غلطى پخپله د علامه عينى رحمه الله ده. ځكه چې فعيل په معنى د فاعل سره، لكه څنګه چې د ثلاثى څخه وى. دغه ډول د مزيد نه هم وى. هم ددې نه محقق رضى شرح كافيه كې ونيلى دى. «و قد جاء فعيل مبالغة مفعل كقوله تعالى ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ أي مؤلم على رايء و قال وأما الفعيل بمعنى المفاعل كالجليس و الحسيب فليس للمبالغة فلا يعمل اتفاقا»

### د اجير اقسام

| |
|---|
| قَالَ: (الْأُجَرَاءُ عَلَى ضَرْبَيْنِ:) اجير په دوې (دوه) قسمه وى. (أَجِيرٌ مُشْتَرَكٌ،) اجير مشترك (وَأَجِيرٌ خَاصٌّ.) او اجير خاص. (فَالْمُشْتَرَكُ مَنْ لَا يَسْتَحِقُّ الْأُجْرَةَ) نو اجير مشترك هغه دې. چه هغه د اجرت نه مستحق كيږى. (حَتَّى يَعْمَلَ كَالصَّبَّاغِ وَالْقَصَّارِ) ترڅو چې كار اوكړى. لكه د كپړې رنګ كونكې او دهوبى ، لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ إِذَا كَانَ هُوَ الْعَمَلَ أَوْ أَثَرَهُ ځكه چې معقود عليه كله عمل يا ددې اثر وى. كَانَ لَهُ أَنْ يَعْمَلَ لِلْعَامَّةِ نو اجير ته اختيار وى. چه د عامو خلګو لپاره كار اوكړى. لِأَنَّ مَنَافِعَهُ لَمْ تَصِرْ مُسْتَحَقَّةً لِوَاحِدٍ، ځكه چې دده منافع د هيڅ چا نه مستحق كيږى. فَمِنْ هَذَا الْوَجْهِ يُسَمَّى مُشْتَرَكًا نو په دې وجه هغه ته اجير مشترك وائى. |



**تشريح:** اجير په دوې (دوه) قسمه وى. يو اجير مشترك، او بل اجير خاص. اجير مشترك هغه دې. چه د عمل نه روسته د اجرت مستحق كيږى. كه د ډيرو كسانو كار كوى. لكه درزى ، كپړه رنګ كونكې، او دهوبى وغيره. يا د يو كس كار كوى. د تعين د وخت نه بغير، يا په تعين د وخت سره. خود عمل د تخصيص نه بغير. دا مستاجر چونكه د عامو خلګو كار كوى. په دې وجه ده ته اجير مشترك وائى.

د اجير خاص تعريف ❁ د اجير خاص دوهم نوم اجير واحد دې. دا هغه كس ته وائى. چه هغه د يو معين وخته پورې صرف د يو مستاجر كار كوى. دا خپل ځان د عقد په موده كې پيش كاوه سره د اجرت مستحق كيږى. كه عمل اوكړى. او كه اونكړى. د دواړو احكام روسته راروان دى.

### د اجير مشترك احكام

| |
|---|
| قَالَ (وَالْمَتَاعُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ إِنْ هَلَكَ) او سامان امانت وى. دده سره، كه هلاك شى. (لَمْ يَضْمَنْ شَيْئًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ ()) نو ضامن به نه وى. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. (وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ،) و هم دا قول دې د امام زفر ، (وَيَضْمَنُهُ عِنْدَهُمَا إِلَّا مِنْ شَيْءٍ غَالِبٍ كَالْحَرِيقِ الْغَالِبِ وَالْعَدُوِّ الْمُكَابِرِ) و ضامن كيږى به د صاحبينو رحمهما الله په نيز. خو په غالب آفت سره (به ضامن نه وى) لكه عام اور، او قاتل دښمن، لَهُمَا مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل هغه دې. كوم چې د حضرت عمر او على رضي الله عنهما نه نقل دې. أَنَّهُمَا كَانَا يُضَمِّنَانِ الْأَجِيرَ الْمُشْتَرَكَ، (٢) چه دوى به اجير مشترك ضامن ګرځولو. |

**تشريح:** اجير مشترك سره چې كوم مال او سامان وى. كه هغه دده د اختيار نه بغير هلاك شى. نود امام صاحب، امام زفر، او حسن بن زياد رحمهم الله په نيز به دې ضامن نه وى. د صاحبينو رحمهما الله او امام مالك رحمه الله په نيز او په يو قول كې د امام شافعى رحمه الله په نيز به ضامن وى. البته كه دا شئ په يو داسې سبب سره هلاك شى. چه ددې نه بچكيدل ممكن نه وى. لكه دده پخپل مرګ مړكيدل. يا اور لګيدل، يا د قاتل دښمن چور كول او بربادول وغيره. د دوى دليل دادې. چه حضرت عمر او حضرت على رضي الله عنهما دواړو به صائغ او صباغ (يعنى زرګر، او كپړه رنګ كونكې) نه ضمان اخستلو. لكه چې حافظ بيهقى رحمه الله په طريق د امام شافعى رحمه الله د حضرت على رضي الله عنه نه روايت كړې دې. «أنه كان يضمن الصباغ و الصائغ و قال لا يصلح للناس إلا ذالك»

| |
|---|
| وَلِأَنَّ الْحِفْظَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ او ځكه چې ساتنه دده په ذمه واجب دې. إِذْ لَا يُمْكِنُهُ الْعَمَلُ إِلَّا بِهِ، ځكه چې دده لپاره كاركول ممكن نه دى. خو په ساتنه سره. فَإِذَا هَلَكَ بِسَبَبٍ نو كله چې هلاك شى په داسې سبب سره. يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ كَالْغَصْبِ وَالسَّرِقَةِ چې ددې نه بچكيدل ممكن دى. لكه غصب او غلا، كَانَ التَّقْصِيرُ مِنْ جِهَتِهِ نو بې غورى دده د اړخه شوه. فَيَضْمَنُهُ كَالْوَدِيعَةِ إِذَا كَانَتْ بِأَجْرٍ، نو ضامن به وى. لكه وديعت چې كله اجرت باندې وى. بِخِلَافِ مَا لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ كَالْمَوْتِ حَتْفَ أَنْفِهِ وَالْحَرِيقِ الْغَالِبِ وَغَيْرِهِ، په خلاف د هغې چې د هغې نه بچكيدل ممكن نه وى. لكه پخپل مرګ مړ كيدل. او عام اور نښليدل وغيره. لِأَنَّهُ لَا تَقْصِيرَ مِنْ جِهَتِهِ. ځكه چې دده د اړخه بې غورى نشته. |

**تشريح:** دا د صاحبينو رحمهما الله عقلى دليل دې. چه د اجير په ذمه ساتنه كول واجب دى. ځكه چې هغه د ساتنه نه بغير كار نشى كولې. ګويا چې ساتنه هم معقود عليه دې. او عقد معاوضه د معقود عليه د سلامتيا تقاضه كوى. نو كله چې مال عين په داسې سبب سره ضائع شى. چه د هغې نه بچكيدل ممكن وى. لكه غلا او غصب

---

(١) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى الخانية (٣\٢٦) ومجمع الأنهر (٣\٥٤٥) ورد لمحتار (٥\٤٥) نقلا عن القول الراجح (٢\٢٣٤)

(٢) أما رواية على رضي الله عنه فأخرجه البيقى فى السنن الكبرى (٦\٢٠٢) رقم ١١٦٦٦) وأما رواية عمر رضي الله عنه فأخرجه البخارى فى الإجارة باب ١٢)_

وغيره.نودا به د اجير د اړخه كمى او بې پرواهي وي.نو ضامن به وي.لكه چې وديعت كي كه مودع د مستودع لپاره د ساتنه اجرت مقرر كړو.نو په هلاكيدلو سره به مستودع ضامن وي.البته كه په داسې سبب سره هلاك وي.چه د هغې نه بچكيدل ناممكن وي.مثلاً ګډبه (شپونكى) سره وزه پخپل مرګ مړه شوه.يا په عامه توګه (عام طور) باندې اور اولګيدلو.يا ډاكه پريوتله.نو په دې صورت كي به ضامن نه وي.ځكه چې اوس د اجير د اړخه هيڅ بې غوري (او بې پرواهي) نشته.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.أَنَّ الْعَيْنَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ؛ چې مال عين دده سره امانت وو.لِأَنَّ الْقَبْضَ حَصَلَ بِإِذْنِهِ،خكه چې قبضه د مستاجر په اجازت سره حاصل شوې وه.وَلِهَذَا لَوْ هَلَكَ بِسَبَبٍ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ په دې وجه كه هغه په داسې سبب سره هلاك شو.چه ددې نه بچكيدل ناممكن دى.لَمْ يَضْمَنْهُ،نو نه ضامن كيږي.وَلَوْ كَانَ مَضْمُونًا كه مال مضمون وو.لَضَمِنَهُ كَمَا فِي الْمَغْصُوبِ،نو ضرور به ضامن كيدلو.لكه چې په زور اخستي شوي مال كي كيږي.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه اجير مشترك سره شئ امانت وو.او په امانت كي ضمان نه وي. كما يؤيده ما رواه الدار قطني لا ضمان على مؤتمن وجه داده.چه ضمان يا خو په قصد سره د هلاكيدلو په وجه واجبيږي.يا د عقد په وجه واجبيږي.او دلته په دې دواړو خبرو كي يوه هم نه ده موجود شوې.تعدي (قصدا) خو ځكه نشته.چه اجير ته د مستاجر په اجاره سره قبضه حاصل شوې وه.اود عقد په وجه ضمان ځكه نشي كيدې.چه عقد واردېدل عمل باندې دى.په مال عين باندې نه دى.نو مال عين مضمون بالعقد نشي كيدې.هم دا وجه ده.كه دا شئ په داسې سبب سره هلاك شي.چه هغې نه بچكيدل ممكن نه دى.نو اجير بالاتفاق نه ضامن كيږي.كه مذكوره مال دده سره ضمانت كي وو.نو دې به ضرور ضامن كيدلو.لكه څنګه چې غاصب په هرحال كي ضامن وي.

وَالْحِفْظُ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ تَبَعًا لَا مَقْصُودًا او په ده باندې ساتنه كول واجب دى.تبعاً مقصوداً نه.وَلِهَذَا لَا يُقَابِلُهُ الْأَجْرُ،په دې وجه د ساتنه په مقابله كي اجرت نه وي.بِخِلَافِ الْمُودَعِ بِأَجْرٍ،په خلاف د هغې چې په اجرت باندې وديعت وركړې شوې وي.لِأَنَّ الْحِفْظَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ مَقْصُودًا په ده باندې قصداً ساتنه واجب دې.حَتَّى يُقَابِلَهُ الْأَجْرُ تردې چې ددې په مقابله كي اجرت دي.

**تشريح:** پاتې شو دا وئيل، چې د اجير په ذمه ساتنه واجب دې.نو ددې خواب دا دې.چه د ساتنه واجبيدل تبعاً دى.قصداً نه دى.ځكه چې د عقد واردېدل د اجير مشترك په عمل باندې دى. ساتنه معقود عليه نه دې.نو ساتنه اصلى مقصود نه دې.بلكه هغه چونكه د عمل قائمولو وسيله ده.په دې وجه تبعاً مقصود ده.په دې وجه د ساتنه په مقابله كي هيڅ اجرت نه وي.په خلاف د هغه سړي چې هغه ته وديعت اجرت باندې وركړې شوې وي.چه هغه باندې ساتنه قصداً واجب دې.تردې چې ددې په مقابله كي اجرت وي.

**خلاصه د بحث:** د اجير مشترك په ضامن كيدلو كي د صحابه كرامو رضي الله عنهم اختلاف دې.د بعضو په نيز ضامن كيږي.اود بعضو په نيز نه ضامن كيږي.بلكه داسې هم ده.چه د يو سړي نه مختلف روايات رانقل دى.لكه دحضرت علي رضي الله عنه نه چې څنګه د اجير مشترك ضامن كيدلو روايت دې.هم ددوى نه عدم ضمان هم رانقل دې.په دې وجه بعضو متاخرينو فقهاؤ دا فتوى وركړې ده.چه اجير او مستاجر دواړه چې په كوم مقدار باندې غواړي.خپل منځ كي دې صلح اوكړي.فقيه ابوالليث رحمه الله ذكر كړې دى.چه فتوى د ابو حنيفه رحمه الله په قول ده.تاج الشريعه، شيخ مرغيناني او قاضي خان رحمهم الله به هم په دې فتوى وركوله.خو علامه زيلعي رحمه الله وغيره فرمائيلي دى.چه نن سهار فتوى د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.ځكه چې د خلګو حالات بدل شوى دى.او د مالونو ساتنه هم په دې سره كيږي.چه د اجير نه ضمان واخستلې شي.د ائمه ثلاثه رحمهم الله قول هم دادې.

**د اجير مشترك په عمل سره د هلاك شوي څيز د ضمان حكم**



قَالَ: (وَمَا تَلِفَ بِعَمَلِهِ) او كوم چې ضائع شى.د اجير په عمل سره.كَتَخْرِيقِ الثَّوْبِ مِنْ دَقِّهِ لكه د كپړې شليدل (د دوبي) په رابرولو (يا وهلو) سره، وَزَلَقِ الْحَمَّالِ د قلي (بار اوړونكى) خوئيدل، وَانْقِطَاعِ الْحَبْلِ الَّذِي يَشُدُّ بِهِ الْمُكَارِي الْحِمْلَ د هغه رسئ شليدل په كوم كي چې كرايه والا بوج تړي.وَغَرَقِ السَّفِينَةِ مِنْ مَدِّهِ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ). او د كښتئ ډوبيدل ، دده په راخكلو سره.ددې ټولو څيزو به تاوان وي.

**حل اللغة:** تلف(س) تلفاً: بربادېدل، ضائع كيدل. تخريق شلول. دق رابرول، وهل. زلق (س) خوئيدل.حمال قلي ، بوج اوچتونكي.حبل رسئ. يشد شداً تړل.مكارى خاروى په كرايه باندې وركونكي. حمل بوج. سفينة كښتئ.مد راخكل. معيب عيبدار. قصار دهوبي.سوق (ن) حيوان (خاروى) د روستو نه شړل. قود(ن) حيوان (خاروى) د مخكي نه راخكل.جنايه جرم.

**تشريح:** كوم شئ چې د اجير مشترك په عمل سره ضائع شى.هغه به ددې ضامن وي ل كه د دهوبي په رابرولو سره كپړه او شليږي.يا د مزدور په خوئيدلو ، يا په كومه رسئ چې بوج تړلې شوې وو.د هغې په شليدلو سره مال ضائع شى.يا د كشتى بان (مانړګى) په غلطه طريقه كښتئ راخكلو سره كښتئ ډوبه شى او مال غرق شى.نو په دې ټولو صورتونو كي به اجير مشترك ضامن وي.امام مالك، امام احمد، او ابن ابى ليلى رحمهم الله هم ددې قائل دى.اودا د حضرت عمر،حضرت عبيدالله بن عتبه رضي الله عنهما ، اود قاضي شريح، حسن، او حكم رحمهم الله نه هم نقل دى.

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رحمهما الله:امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمائي.لَا ضَمَانَ عَلَيْهِ؛ چې په ده باندې ضمان نشته.لِأَنَّهُ أَمَرَهُ بِالْفِعْلِ مُطْلَقًا خكه چې مالك ده ته د مطلق كار كاوو حكم كړې دې.فَيَنْتَظِمُهُ بِنَوْعَيْهِ الْمَعِيبِ وَالسَّلِيمِ نودا به نفع او نقصان دواړو ته ګډ وي.وَصَارَ كَأَجِيرِ الْوَحْدِ وَمُعِينِ الْقَصَّارِ. اودا داسې شوه.لكه د اجير خاص او دهوبي مددګار.

**تشريح:** د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نيز به ضامن نه وي.دا د حضرت عطاء او طاؤس رحمهما الله نه هم نقل دى.ځكه چې دده عمل د مالك په مطلق اجازت سره واقع شوې دې.نودا به نفع او نقصان دواړو ته ګډ وي.نودا داسې شوه.لكه اجيرخاص يا معين دهوبي.چه په دوى باندې ضمان نه وي.اګرچه كار خراب شي.

وَلَنَا زمونږ دليل دادې.أَنَّ الدَّاخِلَ تَحْتَ الْإِذْنِ مَا هُوَ الدَّاخِلُ تَحْتَ الْعَقْدِ چې د اجازت لاندې هم هغه داخل دې.كوم چې د عقد لاندې داخل دې.وَهُوَ الْعَمَلُ الْمُصْلِحُ،او هغه صحيح او درست كار دې.لِأَنَّهُ هُوَ الْوَسِيلَةُ إِلَى الْأَثَرِ خكه چې هم دا د اثر حاصليدلو وسيله ده.وَهُوَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ حَقِيقَةً،او په حقيقت كي هم دا اثر معقود عليه دى.حَتَّى لَوْ حَصَلَ بِفِعْلِ الْغَيْرِ تردې كه دا د غير په فعل سره حاصل وي.يَجِبُ الْأَجْرُ نو اجرت به واجب وي.فَلَمْ يَكُنْ الْمُفْسِدُ مَأْذُونًا فِيهِ،نو غلط عمل په اجازت كي داخل نشو.

**تشريح:** زمونږ دليل دادې.چه اجازت كي هغه عمل داخليږي.كوم چې عقد كي داخل وي.او هغه عمل صالح دې.مفسد عمل نه دې.ځكه چې عين شئ كي دده د فعل اثر كوم چې په حقيقت كي معقود عليه دې.هغه د عمل صالح په ذريعه حاصليږي.مثلاً كپړه كي د دهوبي يا رنګ يا د بوټو اثر به هغه وخت پيدا كيږي.كله چې كار په ټيك طريقه وي.او هم دا اثر په حقيقت كي معقود عليه دې.تردې كه دا اثر د اجير نه د علاوه په فعل سره حاصل وي.مثلاً درزي كپړه په بل چا اوګنډله.يا رنګ كونكي كپړه په بل چا رنګ كړله.نو اجرت واجبيږي.(په دې شرط چې پخپله د كار كاوو شرط نه وي لګولې شوې).معلومه شوه.چه خرابونكې كار په اجازت كي داخل نه دې.

بِخِلَافِ الْمُعِينِ،په خلاف د معين، لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ خكه چې هغه احسان كونكې دې.فَلَا يُمْكِنُ تَقْيِيدُهُ بِالْمُصْلِحِ،نو دده كار مصلح كيدلو سره مقيد كيداې نشى.لِأَنَّهُ يَمْتَنِعُ عَنِ التَّبَرُّعِ،ګني هغه به د احسان كاوه نه منع كيږي.وَفِيمَا

نَحْنُ فِيهِ يَعْمَلُ بِالْأَجْرِ او کوم څه چې موږ ونیلي دي،په دې کې هغه اجرت باندې کار کوي. فَأَمْكَنَ تَقْيِيدُهُ.نو دده د عمل صحیح کیدلو قید لګول ممکن دي. وَبِخِلَافِ أَجِيرِ الْوَحْدِ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى او په خلاف د اجیر خاص، په دې وجه کومه چې به موږه ذکرکړو.ان شاء الله تعالی ، وَانْقِطَاعُ الْحَبْلِ مِنْ قِلَّةِ اهْتِمَامِهِ او د رسۍ شلیدل دده د اهتمام د کوتاهۍ (او بې پرواهۍ) په سره دي. فَكَانَ مِنْ صَنِيعِهِ نو دا دده د حرکت نتیجه ده.

**تشریح:** په خلاف د معین دهوبی ، چې هغه څکه نه ضامن کیږي.چه هغه دا کار د احسان په طور کړې دې.نو دده په حق کې به د ټیك او صحیح عمل کاوه قید نشي لګولې.ګنې هغه به د احسان کاوه نه منع شي.پاتې شوه ذکر شوې مسئله نو په دې کې اجیر اجرت باندې کار کوي.نو دده په حق کې د صحیح کار کاوه قید لګول ممکن دي.په خلاف د اجیر خاص چې دده د نه ضامن کیدلو وجه روستو راروانه ده.

قَالَ: (إِلَّا أَنَّهُ لَا يُضَمِّنُ بِهِ بَنِي آدَمَ مِمَّنْ غَرِقَ فِي السَّفِينَةِ خو هغه سړې به ضامن نه وي.کوم چې کښتۍ کې غرق شي.

**تشریح:** دا د مخکني قول ﴿و ما تلف بعلة مضمون عليه﴾ نه استثناء ده.مطلب دادې.که د اجیرمشترك په فعل سره څه هلاك شي.نو هغه به ضامن وي.خو صرف د مال به ضامن وي.د انسان ضامن به نه وي.نو که کشتی بان (ماڼرګی) بې طریقې کښتۍ راخکله.او په دې کې څوك غرق شو.یا د کرایۍ سوارلۍ نه راپریوتلو.او مړ شو.نو اجیر باندې به دده د نفس تاوان نه وي.څکه چې د نفس تاوان د عقد په وجه نه واجبیږي.بلکه د قتلولو یا زخمي کاوه جرم سره واجبیږي.په دې وجه دا تاوان د قاتل عاقله (مددګار خاندان) باندې راخې.او کوم تاوان چې د عقد په وجه واجب وي.هغه عاقله نه برداشت کوي.

أَوْسَقَطَ مِنَ الدَّابَّةِ وَإِنْ كَانَ بِسَوْقِهِ وَقَوْدِهِ) ایا د کرایۍ سوارلۍ نه راپریوځي.(او مړشي) اګرچه دده په شړلو او راخکلو سره وي. لِأَنَّ الْوَاجِبَ ضَمَانُ الْآدَمِيِّ.څکه چې واجب خو د سړي ضمان دې. وَأَنَّهُ لَا يَجِبُ بِالْعَقْدِ. چې دا عقد سره نه واجبیږي. وَإِنَّمَا يَجِبُ بِالْجِنَايَةِ بلکه جرم سره واجبیږي. وَلِهَذَا يَجِبُ عَلَى الْعَاقِلَةِ،په دې وجه دا عاقله باندې واجبیږي. وَضَمَانُ الْعُقُودِ لَا تَتَحَمَّلُهُ الْعَاقِلَةُ او کوم ضمان چې د عقد په وجه وي.هغه عاقله نه اوچتوي.

**تشریح:** بعض حضرات فرمائي.دا د هغه کس په اړه کې دي.څوك چې سوارلۍ باندې پخپله سور شي.او د سوارلۍ په شا باندې بنه مضبوط کیني.که ډیر ورکوټې ماشوم وي.چه هغه پخپله نشي کیناستلې.نود هغه حکم د سامان پشان دې.خو صحیح داده.چه د لوني او د وړوکي هیڅ توپیر نشته.په هرصورت کې به اجیر د انسان ضامن نه وي.ابن سماعه د امام ابویوسف رحمه الله نه هم داسې روایت کړې دې.

## د عمل په مهال د یو څیز هلاکیدلو د ضمان حکم

قَالَ: (وَإِذَا اسْتَأْجَرَ مَنْ يَحْمِلُ لَهُ دَنًّا مِنَ الْفُرَاتِ یو کس یو سړې په اجاره باندې واخستلو.چه هغه دده لپاره د فرات نه چاټۍ راوچته کړي. فَوَقَعَ فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ فَانْكَسَرَ، نو هغه په لاره کې پریوتله.او ماته شوه. فَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ فِي الْمَكَانِ الَّذِي حَمَلَ که مستاجر غواړي.د متکې د هغه قیمت تاوان دې واخلي.کوم چې د اوچتولو په ځاې کې وو. وَلَا أَجْرَ لَهُ،اوس به اوچتونکي لپاره مزدوري نه وي. وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ فِي الْمَوْضِعِ الَّذِي انْكَسَرَ یا دهغه قیمت تاوان واخلي.کوم چې د ماتیدلو په ځاې کې دې. وَأَعْطَاهُ الْأَجْرَ بِحِسَابِهِ) و ددې په حساب دې اجرت ورکړي.

**تشریح:** زید یوکس ددې لپاره اجرت باندې واخستلو.چه د دریائې فرات نه زما د شهدو چاټۍ فلانۍ ځاې پورې راوړ رسوي.په دې مهال کې مزدور نه چاټۍ ماته شوه.نو مزدور به ضامن وي.اوس مالك ته اختیار دې.که غواړي.مزدور نه دې د هغه قیمت تاوان واخلي.کوم قیمت چې د چاټۍ اوچتولو په ځاې کې وو.او



مزدوري دې نه ورکوي.او که غواړي.د هغه ځاې قیمت دې واخلي.کوم ځاې چې چاټۍ ماته شوې ده.او څومره لاره چې مزدور وهلې ده.د هغې په حساب دې مزدوري ورکړي.

أَمَّا الضَّمَانُ فَلِمَا قُلْنَا تاوان په هغه وجه دې.کوم چې مونږه ونیلې ده. وَالسُّقُوطُ بِالْعِثَارِ او د چاټۍ غورزیدل، که دده په خوئیدلو سره وي. أَوْ بِانْقِطَاعِ الْحَبْلِ یا په رسۍ ماتیدلو سره وي. وَكُلُّ ذَلِكَ مِنْ صَنِيعِهِ هر یو دده د حرکت ځنې دي. وَأَمَّا الْخِيَارُ باتې شو اختیار فَلِأَنَّهُ إِذَا انْكَسَرَ فِي الطَّرِيقِ نو دا څکه چې کله دا په لاره کې ماته شوه. وَالْحَمْلُ شَيْءٌ وَاحِدٌ حالانکه بوج اوچتول یو شې دې. تَبَيَّنَ أَنَّهُ وَقَعَ تَعَدِّيًا مِنَ الِابْتِدَاءِ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. نو دا ښکاره شوه.چه دا په دې طریقه د ابتداء نه تعدی واقع شوه. وَلَهُ وَجْهٌ آخَرُ او دویمه وجه داده. وَهُوَ أَنَّ ابْتِدَاءَ الْحَمْلِ حَصَلَ بِإِذْنِهِ چې په پیل کې اوچتول د مستاجر په اجازت سره شوي وو. فَلَمْ يَكُنْ تَعَدِّيًا نو پیل سره تعدی (فعل) نشو. وَإِنَّمَا صَارَ تَعَدِّيًا عِنْدَ الْكَسْرِ بلکه تعدی (او حرکت) د ماتیدلو په وخت اوشوه. فَيَمِيلُ إِلَى أَيِّ الْوَجْهَيْنِ شَاءَ نو په دواړو کې چې کوم اړخ ته غواړي.مائل دې شي

**تشریح:** نفس ضمان څکه دې.چه مزدور اجیر مشترك دې.چه دده په فعل سره مال ضائع شوې دې.څکه چې د چاټۍ پریوتل که دده په خوئیدلو سره وي.او که د رسۍ شلیدلو سره وي.بهرحال هم دده په حرکت سره دې.چه ده په اهتمام سره احتیاط اونکړو.او اختیار څکه دې.چه دلته کې دوې (دوه) صورتونه دي.یو دا چې چاټۍ د عمل په مهال ماته شوې ده.او بوج اوچتول عمل واحد دې.په دې لحاظ سره تعدی د ابتداء نه واقع شوې ده.دویمه داچه ابتداء کې بوج اوچتول د مالك په اجازت سره عمل کې راغلي دي.نو ابتداء نه تعدی نشوه.بلکه د ماتیدلو نه روسته شوه. ﴿فيميل إلى أي الوجهين﴾

وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي لَهُ الْأَجْرُ بِقَدْرِ مَا اسْتَوْفَى، خو په دوهم صورت کې به اجیر ته دده د کار کاوه په اندازه مزدوري ملاویږي. وَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَا أَجْرَ لَهُ، او په ړومبی صورت کې به هیڅ اجرت نه ملاویږي. لِأَنَّهُ مَا اسْتَوْفَى أَصْلًا څکه چې کار بالکل نه دې موجود شوې.

**تشریح:** بیا په دوهم صورت کې به اجیر ته په دومره اندازه اجرت ملاویږي.په څومره اندازه چې مستاجر دده کار کړې دې.یعنی کوم ځاې پورې چې چاټۍ رارسولې ده.او په ړومبی صورت کې به ده ته هیڅ اجرت نه ملاویږي.څکه چې مستاجر دده په کار کې هیڅ حاصل نکړل.څکه چې د کوم ځاې نه ئې چاټۍ راوچته کړې ده.د هغې قیمت ئې واخستلو.

## د ډاکټر دعلاج په وجه د بیمار یا د څاروي د ضمان حکم

قَالَ: (وَإِذَا فَصَدَ الْفَصَّادُ د زخمونو علاج کونکی (ډاکټر) رګ کلاؤ کړو. أَوْ بَزَغَ الْبَزَّاغُ یا د څاروو معالج (ډاکټر) (څاروی ته) داغ اولګولو . وَلَمْ يَتَجَاوَزِ الْمَوْضِعَ الْمُعْتَادَ او د خپل زخمی (معتاد) ځاې نه زیات نشو. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِيمَا عَطِبَ مِنْ ذَلِكَ. نو په ده باندې تاوان نشته.د هغې کوم چې په دې سره هلاك شي. وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: جامع صغیر کې دي. بَيْطَارٌ بَزَغَ دَابَّةً بِدَانِقٍ چې د څاروو معالج څاروی ته ستن (انجکشن) اولګولو.د یو دانق په عوض. فَنَفَقَتْ نو هغه هلاك شو. أَوْ حَجَّامٌ حَجَمَ عَبْدًا بِأَمْرِ مَوْلَاهُ یا ښکر لګونکی غلام ته دده د اقا په حکم سره ښکر اولګولو. فَمَاتَ او غلام مړ شو. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ) نو په ده باندې ضمان نشته.

**تشریح:** یو جراح (د زخمونو علاج کونکی) د یو کس رګ کلاؤ کړو.یاد څاروو علاج کونکی د څاروی په رګ کې داغ اولګوله.او کوم ځاې چې داغ لګولې شي.د هغې نه زیات نشو.نو ددې په وجه چې کوم هلاکت وغیره راپیښ شي.د هغې به ضامن نه وي.

وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْعِبَارَتَيْنِ نَوْعُ بَيَانٍ. دې دواړو عبارتونو کې یو ډول بیان دې.

**تشریح:** یعنی د مختصر القدوری اود جامع صغیر په ذکر شوی دواړو عبارتونو کي هریوکي یو ډول بیان دې او هغه دادې چه د مختصر په عبارت کي د معتاد (یعنی زخمی) خائې بیان دې اود اجازت نه سکوت دې او په جامع صغیر کي ددې عکس دې نود قدوری عبارت نه دا فائده اوشوه. که د معتاد خائې نه زیات شو نو ضامن به وی اود جامع صغیر نه معلومه شوه که زخم شلول د اجازت نه بغیر وی او هلاکت راپیښ شي نو ضامن به وی.

وَوَجْهُهُ أَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنِ السِّرَايَةِ د عدم ضمان وجه داده چه زخم د زیاتیدلو نه بچ کول دده په امکان (او قدرت) کي نه دی. لِأَنَّهُ يَبْتَنِي عَلَى قُوَّةِ الطِّبَاعِ وَضَعْفِهَا خکه چې دا خو د طبیعتونوپه قوت او کمزورئ باندې مبنی دی. فِي تَحَمُّلِ الْأَلَمِ په تکلیف برداشت کولوکي. فَلَا يُمْكِنُ التَّقْيِيدُ بِالْمُصْلِحِ مِنَ الْعَمَلِ نود مصلح عمل قید لګول ممکن نه دی.

**تشریح:** د فصاد او بزاغ (د زخم علاج کونکی او خاروو ته د علاج لپاره د داغ لګونکی) په ذکر شوی عمل سره د نه ضامن کیدلو وجه داده چه زخم د زیاتیدلو نه بچ کول دده د امکان (او طاقت) نه بهر دی خکه چې دا د طبیعتونوپه قوت او کمزورئ باندې مبنی دی بعض طبعیتونه په تکلیف او سختئ برداشت کاوه کي قوی او مضبوط وی او بعض کمزوری وی نود صحیح کار قید لګول ممکن نه دی.

وَلَا كَذَلِكَ دَقُّ الثَّوْبِ وَنَحْوُهُ مِمَّا قَدَّمْنَاهُ او کپړه رابرول وغیره داسې نه دی. لِأَنَّ قُوَّةَ الثَّوْبِ وَرِقَّتَهُ تُعْرَفُ بِالِاجْتِهَادِ خکه چې د کپړې مضبوطوالې او نرموالې پخپل کوښښ سره معلومیدې شی. فَأَمْكَنَ الْقَوْلُ بِالتَّقْيِيدِ نو په دې کي قید لګول ممکن دی.

**تشریح:** په خلاف د (دهوبی) د کپړې رابرولو وغیره کوم چې وړاندې ذکر شو چه په دې کي داسې نه دی خکه چې د کپړې مضبوطی او نرمی پخپل اجتهاد (او کوشش) سره معلومیدې شی نو په دې کي د صحیح عمل قید لګول ممکن دی.

**فائده⊙** دلته یوه عجیبه مسئله ده او هغه دا که ختنه کونکی نائی حشفه کټ کړله او مختون (سنت کړې شوې) ښه شو نو په نائی باندې د پوره نفس دیت واجبیږی لکه څنګه چې په ژبې پرې کاوه کي دی. او که هغه مړشو نو نصف دیت به واجب وی. شمس الائمه سرخسی رحمه الله پخپل مبسوط کي د امام محمد رحمه الله د نوادر په حواله ددې دا وجه ذکر کړې ده. چه کله هغه ددې نه ښه شو نو نائی باندې به د حشفه تاوان لازم وی او حشفه یو داسې مقصود اندام دې چه د بدن په اندامونو کي ددې هیڅ بدل نشته نو ددې د عوض اندازه به نفس سره کولې شی لکه څنګه چې ژبه کټ کاوه کي کیږی او کله چې هغه ددې نه مړ شو نود نفس هلاکیدل په دوې (دوه) فعلونو (او حرکتونو) سره موجود شو چه په دې کي یو کي دده اجازت دې یعنی خرمن کټ کول او دوهم فعل مضمون دې یعنی حشفه پریکول. ﴿فعلیه نصف بدل النفس كذالك﴾ (بنایه)

### د اجیر خاص احکام

قَالَ: (وَالْأَجِيرُ الْخَاصُّ الَّذِي يَسْتَحِقُّ الْأُجْرَةَ او اجیر خاص هغه دې چه د اجرت مستحق کیږی. بِتَسْلِيمِ نَفْسِهِ فِي الْمُدَّةِ وَإِنْ لَمْ يَعْمَلْ خپل خان (د اجارې) په موده کي حاضرولو سره اګر چې اوس ئې کار نه وی کړې. كَمَنْ اسْتُؤْجِرَ شَهْرًا لِلْخِدْمَةِ أَوْ لِرَعْيِ الْغَنَمِ) لکه (مثلاً) په مزدورئ ئې واخستلو یوکس د یومیاشت خدمت دپاره یا د چیلو څرولو دپاره.

**تشریح:** دوهم ډول اجیر خاص دې چه دې پخپله خپل خان د عقد په موده کي پیش کاوه سره د اجرت مستحق کیږی که دده نه مستاجر کار اخستې وی او که نه وی لکه هغه سړې چې د یو میاشت پورې ئې د خدمت دپاره یا د چیلو څرولو لپاره نوکر ساتلې وی.



وَإِنَّمَا سُمِّيَ أَجِيرَ وَحْدٍ او ده ته اجیر وحد خکه وائی. لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَعْمَلَ لِغَيْرِهِ چې دې دبل چا کار نشي کولې. لِأَنَّ مَنَافِعَهُ فِي الْمُدَّةِ صَارَتْ مُسْتَحَقَّةً لَهُ خکه چې په مقرره موده کي دښه دده منافع هم ددې یو مستاجر مستحق شو. وَالْأَجْرُ مُقَابَلٌ بِالْمَنَافِعِ او پوره اجرت د منافعو په مقابله کي دې. وَلِهَذَا يَبْقَى الْأَجْرُ مُسْتَحَقًّا وَإِنْ نُقِضَ الْعَمَلُ. هم دا وجه ده چه د اجرت استحقاق پاته پاتې کیږی اګرچه کار مات کړې شی.

**تشریح:** اجیر خاص ته اجیر وحد هم وائی خکه چې دا د بل کس کار نشي کولې خکه چې په مقرره موده کي دښه دده پوره منافع هم ددې یو مستاجر مستحق شو او پوره اجرت هم ددې منافعو په مقابله کي دې په دې وجه ته د اجرت استحقاق وی اګرچه کار مات کړې شی په خلاف د اجیر مشترک که د مستاجر د قبضه کاوه نه وړاندې کار مات کړې شو نو هغه د اجرت نه مستحق کیږی لکه د امام محمد رحمه الله نه نقل دی که درزی د یو کس کپړه په یو درهم اجرت باندې اوګنډله بیا د مالك قبضه کیدلو نه وړاندې یوکس ګنډل وران کړل نو درزی به د اجرت مستحق نه وی او په یو خاص نوکر (اجیرخاص) باندې ئې اوګنډله بیا مالك یا بل چا ګنډل خراب کړل نو نوکر به د اجرت مستحق وی.

### په اجیرخاص کښې د احنافو مسلك

قَالَ: (وَلَا ضَمَانَ عَلَى الْأَجِيرِ الْخَاصِّ فِيمَا تَلِفَ فِي يَدِهِ و ضمان نه وی اجیر خاص باندې، دهغې کوم چې هلاك شی دده سره. وَلَا مَا تَلِفَ مِنْ عَمَلِهِ) او نه د هغې کوم چې هلاك شی دده په عمل سره.

**تشریح:** د اجیرخاص حکم دادې که شی دده په قبضه کي هلاك شی مثلاً دده نه غلا شی یا ورك شی یا ئې څوك په زبردستئ واخلی یا دده په عمل (او حرکت) سره ضائع شی مثلاً بیلچه یا پهاوړا سخکوره ماته شوه یا د دهوبی نه کپړه اوشلیدله یا غوښه په پخولو کي خرابه شوه ډوډئ اوسوزیدله نو په دواړو صورتونو کي به هغه ضامن نه وی امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

د امام شافعی رحمه الله مسلك⊙ او د امام شافعی رحمه الله په دې اړه کي دوې (دوه) قوله دی یو دا چې د اجیر مشترك پشان به اجیرخاص هم ضامن وی ددوی منصرص قول هم دادې کوم چې حلیه کي ذکر دې او بعضو شوافعو وئیلی دی او په بل قول کي به ضامن نه وی بیا عدم ضمان هغه وخته بورې دې چه قصداً ئې نه وی کړې او که په قصد سره داسې کړې وی نود مستودع پشان به بلا خلاف ضامن وی.

### د احنافو دلیل

أَمَّا الْأَوَّلُ بهرحال رومبې فَلِأَنَّ الْعَيْنَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ نو دا خکه چې مال عین دده په قبضه کي امانت دې لِأَنَّهُ قَبَضَ بِإِذْنِهِ خکه چې ده د مستاجر په اجازت سره قبضه کړې ده. وَهَذَا ظَاهِرٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خو ښکاره ده. وَكَذَا عِنْدَهُمَا او هم دغه ډول د صاحبینو رحمهما الله په نیز هم لِأَنَّ تَضْمِينَ الْأَجِيرِ الْمُشْتَرَكِ نَوْعُ اسْتِحْسَانٍ عِنْدَهُمَا لِصِيَانَةِ أَمْوَالِ النَّاسِ خکه چې اجیر مشترك ضامن ګرخول، ددوی په نیز یو ډول استحسان دې د خلګو نه مالونه د محفوظ ساتلو دپاره. وَالْأَجِيرُ الْوَحْدُ لَا يَتَقَبَّلُ الْأَعْمَالَ او اجیر خاص د بل کار نه قبلوی. فَتَكُونُ السَّلَامَةُ غَالِبَةً نو په دې کي سلامتیا غالبه شوه. فَيُؤْخَذُ فِيهِ بِالْقِيَاسِ نو دده په حق کي به قیاس اخستلې شی.

**تشریح:** که د اجیر خاص په قبضه کي مال عین هلاك شی نود نه ضامن کیدلو وجه داده چه مال دده په قبضه کي امانت دې خکه چې ده د مستاجر په اجازت سره په دې باندې قبضه کړې ده او امین بلا تعدی نه ضامن کیږی علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی چه دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خو ښکاره دی تردې چې د دوی په نیز اجیر مشترك نه ضامن کیږی دغه ډول د صاحبینو رحمهما الله په نیز هم دا حکم دې خکه چې د دوی په نیز اجیر مشترك ضامن ګرخول یو ډول استحسان دې چه د خلګو مالونه محفوظ شی خکه چې هغوی د

مياشتو شيان اخلي.او د زيات اجرت حاصلولو په غرض سره كار كوي.او په ساتنه كي اكثر بې پرواهي كوي.په دې وجه استحساناً ضامن كړې شو.چه مالونه په ساتنه پاتې شي.په خلاف د اجير خاص،چه هغه د بل چا كار نه قبلوي.نو په دې كي ساتنه او سلامتيا غالب ده.نو دده په حق كي به اصل قياس اخستلې شي.چه هغه ضامن نه دې.

وَأَمَّا الثَّانِي پاتې شو دوهم فَلِأَنَّ الْمَنَافِعَ مَتَى صَارَتْ مَمْلُوكَةً لِلْمُسْتَأْجِرِ نو دا خكه چې هر كله منافع د مستاجر مملوك شو. فَإِذَا أَمَرَهُ بِالتَّصَرُّفِ فِي مِلْكِهِ نو كله چې مستاجر هغه ته پخپل ملك كي د تصرف حكم وركړو. صَحَّ نو دا حكم صحيح شو. وَيَصِيرُ نَائِبًا مَنَابَهُ او هغه د مستاجر قائم مقام شو. فَيَصِيرُ فِعْلُهُ مَنْقُولًا إِلَيْهِ نو د اجير خاص فعل مستاجر ارخ ته منتقل شو. كَأَنَّهُ فَعَلَ بِنَفْسِهِ گويا چې ده پخپله كړې دي. فَلِهَذَا لَا يَضْمَنُهُ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو هغه د اجير نه ضمان نشي اخستې.

**تشريح:** او كوم شئ چې د اجير خاص عمل (او حركت سره هلاك شي.هغې كي د عدم ضمان وجه داده.چه كله منافع د مستاجر مملوك شوې.او مستاجر ده ته پخپل ملك كي د تصرف حكم وركړو.نو دده حكم وركول صحيح شو.اوس هغه د مستاجر قائم مقام شو.او دده فعل مستاجر ارخ ته منتقل شو.گويا مستاجر دا كار پخپله كړې دي.نو مستاجر د اجير خاص نه تاوان نشي اخستلې.

## باب الإجارة على أحد الشرطين

ژباړه: (دا) باب (په) احد الشرطين باندې د اجاره كاوه (په بيان كي) دې.

**تشريح:** د اجاره بشرط واحد د بيان نه د فراغت نه روسته په دې باب كي دوې (دوه) يا ددې نه زياتو شرطونو كي يو شرط باندې د اجارې احكام بيانوي. ﴿لأن الواحد قبل الإثنين﴾.

**د جلا جلا ډېرائنونو په شرط كښې اجرت بيانولو سره، يوشرط پوره كول او د اجرت حكم**

(وَإِذَا قَالَ لِلْخَيَّاطِ كله نې چې درزي ته اووئيل. إِنْ خِطْتَ هَذَا الثَّوْبَ فَارِسِيًّا كه تا دا كپړه په فارسي ډول باندې اوگنډله فَبِدِرْهَمٍ نو يو درهم به وي. وَإِنْ خِطْتَهُ رُومِيًّا او كه په رومي ډول دې اوگنډله. فَبِدِرْهَمَيْنِ نو دوې (دوه) درهمه به وي. جَازَ نو دا جائز دى. وَأَيَّ عَمَلٍ مِنْ هَذَيْنِ الْعَمَلَيْنِ عَمِلَ اسْتَحَقَّ الْأَجْرَ بِهِ) اوس چې په دې كي كوم كار اوكړي.هم د هغې د اجرت مستحق به وي.

**تشريح:** په عمل كي ترديد سره اجرت كي ترديد صحيح دې.مثلاً مستاجر درزي ته اووائي.كه ته قباء (كوټ) فارسي ډول باندې اوگنډې.نو اجرت به يو درهم وي.او كه په رومي ډول باندې اوگنډې.نو اجرت به دوې (دوه) درهمه وي.نو دا جائز ده.اوس ئې چې هغه په كوم ډول باندې اوگنډي.هم د هغې د اجرت به مستحق وي.

وَكَذَا إِذَا قَالَ لِلصَّبَّاغِ كه رنگ كونكي ته ئې اووئيل. إِنْ صَبَغْتَهُ بِعُصْفُرٍ كه تا دا كپړه په كسم (يو ډول سور رنگ) سره رنگ كړله. فَبِدِرْهَمٍ نو يو درهم به وي. وَإِنْ صَبَغْتَهُ بِزَعْفَرَانٍ او كه په زعفران دې رنگ كړله. فَبِدِرْهَمَيْنِ نو دوې (دوه) درهمه به وي.

**تشريح:** دغه ډول كه رنگ كونكي ته ئې اووئيل.كه تا دا كپړه كسم (يو ډول سور رنگ) سره رنگ كړله.نو اجرت به يو درهم وي.او كه زعفران سره دې رنگ كړله.نو دوې (دوه) درهمه به وي.بيا هم دا حكم دې.چه دواړو كي ئې كوم رنگ سره رنگ كوي.هم د هغې د اجرت به مستحق وي.

وَكَذَا إِذَا خَيَّرَهُ بَيْنَ شَيْئَيْنِ دغه ډول كه په دوې (دوه) څيزونو كي ئې اختيار وركړو. بِأَنْ قَالَ: په دې طريقه ئې اووئيل. آجَرْتُكَ هَذِهِ الدَّارَ شَهْرًا بِخَمْسَةٍ چې ما دا كور د مياشتې په حساب د پنځه درهمو په عوض، أَوْ هَذِهِ الدَّارَ



الْأُخْرَى بِعَشَرَةٍ، يا هغه بل كور د لس درهمو په عوض كرايه باندې دركړو.

**تشريح:** او كه آجر مستاجر ته په دوې (دوه) څيزونو كي اختيار وركړو.مثلاً وې وئيل.چه ما دا كور ماهانه د پنځه درهمو په عوض يا هغه بل كور ماهانه لس درهمو په عوض كرايه باندې دركړو.نو دا هم صحيح ده.نو مستاجر چې په كوم كور كي اوسيدل اختيار كړي.هم د هغې كرايه به واجب وي.

وَكَذَا إِذَا خَيَّرَهُ بَيْنَ مَسَافَتَيْنِ مُخْتَلِفَتَيْنِ دغه ډول ئې چې كله ده ته په دوې (دوه) مختلف لارو كي اختيار وركړو. بِأَنْ قَالَ: په دې طريقه ئې اووئيل. آجَرْتُكَ هَذِهِ الدَّابَّةَ إِلَى الْكُوفَةِ بِكَذَا أَوْ إِلَى وَاسِطٍ بِكَذَا چې ما تاته دا حيوان (څاروې) كوفې پورې په دومره يا واسط پورې په دومره كرايه باندې دركړو.

**تشريح:** دغه ډول كه په دوې (دوه) مختلفو لارو كي ئې اختيار وركړو.مثلاً داسې ئې اووئيل. چې دا حيوان (څاروې) كوفې پورې په عوض د لس درهمو او واسط پورې په عوض د پنځو درهمو كرايه باندې دې.بيا هم دا حكم دې.چه كوم خائي پورې سور لاړشي.هم د هغې كرايه به واجب وي.

وَكَذَا إِذَا خَيَّرَهُ بَيْنَ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ، دغه شان چې كله ئې ده ته په دريو څيزونو كي اختيار وركړو. وَإِنْ خَيَّرَهُ بَيْنَ أَرْبَعَةِ أَشْيَاءَ او كه په څلورو كي ئې اختيار وركړو. لَمْ يَجُزْ نو جائز به نه وي.

**تشريح:** دغه ډول كه په دريو څيزونو كي ئې اختيار وركړو.مثلاً داسې ئې اووئيل.كه تا دا كپړه فارسي ډول باندې اوگنډله.يا دې كسمي رنگ وركړو.نو اجرت يو درهم دې.او كه په رومي ډول باندې دې اوگنډله.يا زعفراني رنگ درې وركړو.نو اجرت دوې (دوه) درهمه دې.او كه په تركي ډول باندې دې اوگنډله.يا دې په ورس سره رنگ كړله.نو اجرت به درې درهمه وي.نو دغه ډول هم اجاره صحيح ده.البته كه ده په څلورو څيزونو كي اختيار وركړو.نو اجاره به صحيح نه وي.

بهرحال په دې ټولو صورتونو كي زمونږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز اجاره استحساناً صحيح ده.په يو روايت كي امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.امام مالك، امام شافعي ، او په دوهم روايت كي د امام احمد ،اسحاق، ابوثور، سفيان ثوري ،او د امام زفر رحمهم الله په نيز اجاره صحيح نه ده.امام ابوحنيفه رحمه الله هم مخكې ددې قائل وو.او د قياس تقاضه هم داده.څكه چې معقود عليه في الحال مجهول ده.وجه د استحسان داده.چه ده د دوې (دوه) مختلف او صحيح عقدونو په منځ كي اختيار وركړې دې.او اجرت عمل سره واجبيږي.نو د عمل په وخت به اجرت متعين كيږي.او جهالت به ختميږي.نو هغه چې څنگه كار كوي.هم هغه شان اجرت به ملاويږي.

وَالْمُعْتَبَرُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ الْبَيْعُ او په دې ټولو صورتونو كي بيع باندې قياس دې. وَالْجَامِعُ دَفْعُ الْحَاجَةِ، او امرجامع د اړتيا پوره كاوه لپاره دې. غَيْرَ أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ اشْتِرَاطِ الْخِيَارِ فِي الْبَيْعِ صرف دومره خبره ده.چه بيع كي خيار شرط ضروري دې. وَفِي الْإِجَارَةِ لَا يُشْتَرَطُ ذَلِكَ، او اجاره كي دا شرط نشته. لِأَنَّ الْأَجْرَ إِنَّمَا يَجِبُ بِالْعَمَلِ، څكه چې اجرت خو عمل سره واجبيږي. وَعِنْدَ ذَلِكَ يَصِيرُ الْمَعْقُودُ عَلَيْهِ مَعْلُومًا، او د عمل كاوه په وخت معقود عليه پخپله معلوميږي. وَفِي الْبَيْعِ يَجِبُ الثَّمَنُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او بيع كي ثمن نفس عقد سره واجبيږي. فَتَتَحَقَّقُ الْجَهَالَةُ عَلَى وَجْهٍ لَا تَرْتَفِعُ الْمُنَازَعَةُ إِلَّا بِإِثْبَاتِ الْخِيَارِ نو جهالت به متحقق كيږي.په دې طريقه چې جگړه به نه لرې كيږي.د خيار ثابتولو نه بغير.

**تشريح:** په ذكر شوي ټولو صورتونو كي قياس بيع باندې دې.او د قياس علت اړتيا دفع كول دی.نو لكه څنگه چې په دوې (دوه) يا دريو كپړوكي د يو بيع جائز ده.او په څلورو كي د يو بيع جائز نه ده.دغه ډول به اجاره كي هم كيږي.څكه چې دريو څيزونو كي ادنی ، اوسط او اعلی موجود وي.چه په دې سره اړتيا لرې كيږي.نو ددې نه زياتي به د اړتيا نه بغير جائز نه وي.صرف دومره خبره ده.چه بيع كي خيار شرط ضروري دې.لكه څنگه چې كتاب البيوع كي تير شو.او اجاره كي دا شرط نشته.وجه داده.چه اجاره كي اجرت د عقد په ذريعه نه واجبيږي.بلكه كله چې كار پوره شي.نو هغه وخت واجبيږي.او كله چې كار پوره شو.نو پخپله

معلومه شوه.چه معقود عليه هم دادې.په خلاف د بيع، چې په دې کې د ثمن وجوب نفس عقد سره کيږي.نو په دې کې به معقود عليه مجهول وي.اودا جهالت به داسې وي.چه د خيار ثابتولو نه بغير به جګړه نه لرې کيږي.

**د نن او صبا په شرط، جلا جلا اجرت ټاکلو سره نن يا صبا کار ختمېدل او د اجرت حکم**

وَلَوْقَالَ: او که وي وئيل. إِنْ خِطْتَهُ الْيَوْمَ که نن دې اوګنډله. فَبِدِرْهَمٍ، نو يو درهم به وي. وَإِنْ خِطْتَهُ غَدًا او که سهار دې اوګنډله. فَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ، نو نصف درهم به وي. فَإِنْ خَاطَهُ الْيَوْمَ نو که هم نن ئې اوګنډله. فَلَهُ دِرْهَمٌ، نو يو درهم به وي. وَإِنْ خَاطَهُ غَدًا او که سهار ئې اوګنډله. فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ نو اجر مثل به وي. عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ دِرْهَمٍ(١). د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د نصف درهم نه نه زياتيږي. وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: جامع صغير کې دي. لَا يُنْقَصُ مِنْ نِصْفِ دِرْهَمٍ وَلَا يُزَادُ عَلَى دِرْهَمٍ. چې د نصف درهم نه کم اود يو درهم څخه به زيات نه وي.

**تشريح:** ذکر شوې بيان خو د عمل ترديد سره د اجرت وو.که د اجرت ترديد د وخت ترديد سره وي.نودا هم صحيح ده.لکه چې مستاجر داسې اووائي.که ته ئې نن اوګنډې.نو يودرهم به ملاويږي.اوکه صباله دې اوګنډله.نو نصف درهم به ملاويږي.اوس که هغه نن هم اوګنډي.نو يو درهم به ملاويږي.او که صباله ئې اوګنډي نو (هم به يو درهم ملاويږي).

دامام صاحب مسلك ✿د امام صاحب رحمه الله په نيز به اجرمثل ملاويږي.اجر مسمى به نه ملاويږي.خو اجرمثل به د نصف درهم نه زيات نه ملاويږي.دا د ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دې.چه ابو الحسين قدوري رحمه الله ذکر کړې دې.او امام کرخي رحمه الله هم دا اختيار کړې دې.او په جامع صغير کې دي.چه د نصف درهم نه کم اود يو درهم څخه به زيات نشي ورکولې.خو ړومبې روايت زيات صحيح دې.

**د صاحبينو رحمهما الله مسلك**

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: الشَّرْطَانِ جَائِزَانِ) صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه دواړه شرطونه جائز دی.

**تشريح:** ✿ د صاحبينو رحمهما الله په نيز دواړه شرطونه جائز دی.نو په کومه ورځ ئې چې اوګنډي.هم د هغې مسمى اجرت به ملاويږي.يعنی که نن ئې اوګنډي.نو يو درهم او که سهار له ئې اوګنډي.نو نصف درهم به ملاويږي.

قَالَ: زُفَرُ: او امام زفر رحمه الله فرمائي. الشَّرْطَانِ فَاسِدَانِ، چې دواړه شرطونه فاسد دی. لِأَنَّ الْخِيَاطَةَ شَيْءٌ وَاحِدٌ، خکه چې ګنډل خو يو شئ دې. وَقَدْ ذُكِرَ بِمُقَابَلَتِهِ بَدَلَانِ عَلَى الْبَدَلِ حالانکه ددې په مقابله کې دوې (دوه) عوضونه د بدل په طور ذکر کړی دی. فَيَكُونُ مَجْهُولًا نو اجرت مجهول شو. وَهَذَا لِأَنَّ ذِكْرَ الْيَوْمِ لِلتَّعْجِيلِ، اودا خکه چې د نن ورخ ذکر کول جلتئ لپاره دی. وَذِكْرَ الْغَدِ لِلتَّرْفِيهِ او د سهار ذکر کول سهولت لپاره دی. فَيَجْتَمِعُ فِي كُلِّ يَوْمٍ تَسْمِيَتَانِ. نو په هره ورځ کې دوې (دوه) تسميې جمع شوې.

**تشريح:** د امام زفر، آئمه ثلاثه، سفيان ثوری ، او اسحاق رحمهم الله په نيز دواړه شرطونه فاسد دی.خکه چې کپړې ګنډل يو شئ دې.چه ددې په مقابله کې دوې (دوه) عوضونه د بدليدلو په طريقه ذکر کړې شوی دی.نو بدل مجهول شو.وجه دا ده.چه نن ورځ ذکرکول دجلتئ لپاره دی.اود سهار ذکرکول د سهولت لپاره دی.نو په هره ورځ کې دوې (دوه) تسمئې جمع شوې.يعنی هرکله چې د نن او سهار ذکر د جلتئ او آسانتيا لپاره شو.نو ګويا چې کوم عقد د سهار لپاره دې.هغه هم د نن نه ثابت دې.نو نن ورځ خو يو د نن عقد تسميه يو درهم شو.او دويمه د سهار تسميه نيم درهم شو.او هم دا د سهار حال دې.نود هر ورځ تسمئې جمع شوې.پس عقد

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٣\٢٥) ومجمع الأنهر(٣\٥٥٠) وردالمحتار(٥\٤٥) نقلاً عن قول الراجح (٢\٢٣٥)



فاسد شو.

**د صاحبينو رحمهما الله دليل**

وَلَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې. أَنَّ ذِكْرَ الْيَوْمِ لِلتَّأْقِيتِ. چې نن ورځ ذکر کول وخت لپاره دی. وَذِكْرَ الْغَدِ لِلتَّعْلِيقِ او د سهار ذکرکول تعليق لپاره دی. فَلَا يَجْتَمِعُ فِي كُلِّ يَوْمٍ تَسْمِيَتَانِ. نو په هره ورځ کې دوې (دوه) تسمئې جمع نشوې. وَلِأَنَّ التَّعْجِيلَ وَالتَّأْخِيرَ مَقْصُودًا او خکه چې جلتئ کول او ليټ کول (روسته کول) دواړه مقصود دی. فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ اخْتِلَافِ النَّوْعَيْنِ. نودا د اختلاف نوعی په درجه کې شو.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه نن ورځ ذکر کول د جلتئ په غرض توقيت لپاره ده.(خکه چې دا حقيقت دې).اود سهار ذکرکول تعليق لپاره دی.(يعنی د اضافت لپاره دې.خکه چې اجاره تعليق نه قبلوی).نو په هره ورځ کې دوې (دوه) تسمئې نه جمع کيږي.او په دې وجه هم چې په جلتئ او روسته کاوه کې هر يو داسې امر دې.چه دا په لحاظ د اغراض مقصود وي.نودا اختلاف دغرض نوعی اختلاف په درجه کې شو.يعنی ګويا فارسی او رومی د دوې (دوه) مختلفو ګنډلو پشان دې.نو عقد به صحيح وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ ذِكْرَ الْغَدِ لِلتَّعْلِيقِ حَقِيقَةً. چې د سهار ذکرکول د تعليق لپاره دي. وَلَا يُمْكِنُ حَمْلُ الْيَوْمِ عَلَى التَّأْقِيتِ، او ،، نن ورځ ،، ذکر کول وخت مقرر کاوه باندې محمول کول ممکن نه دې. لِأَنَّ فِيهِ فَسَادَ الْعَقْدِ لِاجْتِمَاعِ الْوَقْتِ وَالْعَمَلِ، خکه چې په دې کې د وخت او عمل د اجتماع په وجه دعقد فساد دی. وَإِذَا كَانَ كَذَلِكَ اوهرکله چې دا خبره ده. يَجْتَمِعُ فِي الْغَدِ تَسْمِيَتَانِ دُونَ الْيَوْمِ، نود سهار په ورځ کې به دوې (دوه) تسمئې جمع کيږي.په نن ورځ کې نه. فَيَصِحُّ الْيَوْمُ الْأَوَّلُ نو ړومبې شرط به صحيح وي. وَيَجِبُ الْمُسَمَّى، او اجر مسمى به واجب وي. وَيَفْسُدُ الثَّانِي او شرط ثانی به فاسد وي. وَيَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ او اجر مثل به واجب وي. لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ دِرْهَمٍ، چې دا به د نصف درهم نه نه زياتيږي. لِأَنَّهُ هُوَ الْمُسَمَّى فِي الْيَوْمِ الثَّانِي. خکه چې د دويمې ورځې مقرره اجرت هم دادې. وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ او جامع صغير کې دی. لَا يُزَادُ عَلَى دِرْهَمٍ وَلَا يُنْقَصُ مِنْ نِصْفِ دِرْهَمٍ، چې د يو درهم نه زيات اود نصف درهم څخه به نشی کمولې. لِأَنَّ التَّسْمِيَةَ الْأُولَى لَا تَنْعَدِمُ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي خکه چې ړومبې تسميه په دويمه ورځ نه ختميږي. فَتُعْتَبَرُ لِمَنْعِ الزِّيَادَةِ نو ړومبې تسميه د زياتوالی منع کاوه دپاره، وَتُعْتَبَرُ التَّسْمِيَةُ الثَّانِيَةُ لِمَنْعِ النُّقْصَانِ، او دويمه تسميه د کمی منع کاوه لپاره معتبر وي.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د سهار ذکرکول حقيقت کې تعليق لپاره دی.او د نن ورځ ذکرکول توقيت باندې نشی محمول کولې.ګنی د وخت او عمل د اجتماع په وجه به عقد فاسديږي.خکه که د عقد لحاظ اوکړې شی.نو هغه اجير خاص جوړيږي.اوکه د کار لحاظ اوساتلې شی.نو هغه اجيرمشترك ګرځيږي.حالانکه په دوی دواړو کې توپير دې.ددوی په لوازمو کې د توپير کيدلو په وجه.خکه چې عمل ذکرکول د اجرت د عدم وجوب موجب دې.ترکومه پورې چې هغه عمل اونکړې.او ذکر د وخت د اجرت دوجوب موجب دې.کله چې هغه موده کې پخپله خپل ځان پيش کړې.او تنافی د لوازمو په تنافی د ملزوماتو باندې دلالت کوی. بهرحال وخت ذکر کاوه سره موده مقصود نه ده.او هرکله چې دا خبره ده.نو دوې (دوه) تسمئې په نن ورځ کې جمع نشوې. بلکه په سهار ورځ کې جمع شوې.نو ړومبې شرط به صحيح وی.او اجر مسمى به واجب وي.او شرط ثانی به فاسد وي.او اجرمثل به واجب وي.چه دا به د نصف درهم نه زيات نشی ورکولې.خکه چې د دويمې ورځې مقرره اجرت هم دا نصف درهم دې.

فَإِنْ خَاطَهُ فِي الْيَوْمِ الثَّالِثِ نو که درزی په دريمه ورځ اوګنډله. لَا يُجَاوَزُ بِهِ نِصْفُ دِرْهَمٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د نصف درهم نه زيات نشی ورکولې. هُوَ الصَّحِيحُ، هم دا صحيح ده. لِأَنَّهُ إِذَا لَمْ يَرْضَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَى الْغَدِ خکه چې کله مستاجر د سهار پورې تاخير باندې راضی نه وو. فَبِالزِّيَادَةِ عَلَيْهِ إِلَى مَا بَعْدَ الْغَدِ

أَوْلى نو ددي نه زيات دريمي ورځي پورې تاخير باندې به په درجه اولى راضي نه وي.

**تشريح:** بيا كه درزى كپړه په دريمه ورځ اوګنډله.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به د نصف درهم نه زيات نشي وركولى.هم دا صحيح ده.ځكه چې هركله مستاجر د سهار پورې تاخير باندې راضي نه وو.نو د بلې (يعنى دريمې) ورځې پورې تاخير باندې به په درجه اولى راضي نه وي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز صحيح دادى.چه د نصف درهم نه كم كړې شي.

## د مختلف نوعيت كاروبار يا سفر په وجه كرايه كښې د فرق كولو حكم

وَلَوْقَالَ: اِنْ سَكَنْتَ فِى هٰذَا الدُّكَّانِ عَطَّارًا كه وې ونيل.كه تا په دې دوكان كې عطار ډيره كرو.فَبِدِرْهَمٍ فِى الشَّهْرِ نو يو درهم ماهوارى ده.وَاِنْ سَكَنْتَهُ حَدَّادًا اوكه اهنګر (لوهار) دې كينولو.فَبِدِرْهَمَيْنِ نو دوې (دوه) درهمه ماهوارى ده.جَازَ نودا جائز ده.وَاَيَّ الْاَمْرَيْنِ فَعَلَ اسْتَحَقَّ الْاَجْرَ الْمُسَمّٰى فِيْهِ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ.په دې كې چې كوم كوى.هم د هغې د اجر مسمى به مستحق وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي.اَلْاِجَارَةُ فَاسِدَةٌ، چې اجاره فاسد ده.وَكَذَا اِذَا اسْتَاْجَرَ بَيْتًا عَلٰى اَنَّهُ اِنْ سَكَنَ فِيْهِ عَطَّارًا داغه ډول كه اطاق ني په دې شرط كرايه باندې واخستله.كه عطار دې اوساتلو.فَبِدِرْهَمٍ نو يو درهم كې دې.وَاِنْ سَكَنَ فِيْهِ حَدَّادًا اوكه اهنګر (لوهار) دې اوساتلو .فَبِدِرْهَمَيْنِ نو په دوې (دوه) درهمه كې دې.فَهُوَ جَائِزٌ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ نودا هم جائز دى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَقَالَا: لَا يَجُوْزُ صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه جائز نه دى. (وَمَنِ اسْتَاْجَرَ دَابَّةً اِلَى الْحِيْرَةِ بِدِرْهَمٍ كه حيوان (څاروى) ني كرايه باندې واخستلو.حيره پورې په يو درهم كې .وَاِنْ جَاوَزَ بِهَا اِلَى الْقَادِسِيَّةِ اوكه ددې نه ني قادسيه پورې وارولو.فَبِدِرْهَمَيْنِ نو په دوې (دوه) درهمه كې ،فَهُوَ جَائِزٌ نودا جائز دى.

**تشريح:** د كور او عامل، په مسافه او بوج كې ترديد كاوه سره هم د اجرت ترديد صحيح دې.مثلاً داسې اووايي:① كه په دې دوكان كې دې اهنګر (لوهار) اوساتلو.نودا كرايه به وي.او كه عطار دې اوساتلو.نودا به وي.② يا اصل حيوان (څاروى) كه كوفې پورې بوځي.نودا كرايه به وي.اوكه اوسط پورې ني بوځي.نودا كرايه به وي.③ يا كه په دې غنم بار كوې.نو اجرت به دا وي.او كه اوربشې بار كوې.نو دا كرايه به وي.په دې ترديداتو كې چې كوم شئ موجود شي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به هم د هغې اجرت واجب وي. د صاحبينو رحمهما الله او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به د سره عقد جائز نه وي.

**د صاحبينو رحمهما الله مسلك:** د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز نه دى.لكه څنګه چې ددې مسئلې په نورو مثالونو كې ددې په نيز عدم جواز دې.د اختلاف د احتمال وجه داده.چه امام محمد رحمه الله په جامع صغير كې ددې مسئلې په اړه كې هيڅ اختلاف نه دې ذكركړې.په غاية البيان كې دى.چه د فقيه ابوالليث رحمه الله ميلان دې ارخ ته دې.چه مذكوره حكم اتفاقي دې.اود فخرالاسلام ميلان دې ارخ ته دې.چه د جواز حكم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز عدم جواز دې.عتابي وغيره هم دې ارخ ته مائل دي.

وَيَحْتَمِلُ الْخِلَافَ اود اختلاف احتمال دې، وَاِنِ اسْتَاْجَرَهَا اِلَى الْحِيْرَةِ عَلٰى اَنَّهُ اِنْ حَمَلَ عَلَيْهَا كُرَّ شَعِيْرٍ كه حيوان (څاروى) حيره مقام پورې په دې شرط كرايه باندې واخستلو.كه په دې باندې يو كر اوربشې بار كړي.فَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ نو په نصف درهم دې.وَاِنْ حَمَلَ عَلَيْهَا كُرَّ حِنْطَةٍ وكه يو كُر غنم بار كړي.فَبِدِرْهَمٍ نو په يو

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٣/٥٥١) وكنز الدقائق (٣٢٠) والزيلعي ( ١٤٠١٥ ) نقلاً عن القول الراجح (٢/٢٣٦) وفي المسئلة الثانية أعني الإستيجار إلى الحيرة كالمسئلة الأولى ) انظر القول الراجح (٢/٢٣٦)



درهم كې دې، فَهُوَ جَائِزٌ فِىْ قَوْلِ اَبِىْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ نودا هم جائز دى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول كې، وَقَالَا: لَا يَجُوْزُ صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه جائز نه دى ؛

**تشريح:** يعنى په ذكرشوې مستاجره څاروى كې دواړه احتماله دى.دا هم ممكن ده. چې د اجارة جواز د ټولو په نيز وي.او دا هم ممكن ده.چه د جواز قول د امام ابوحنيفه رحمه الله وي.

وَجْهُ قَوْلِهِمَا دوى د قول وجه داده.اَنَّ الْمَعْقُوْدَ عَلَيْهِ مَجْهُوْلٌ، چې معقود عليه مجهول دې.وَكَذَا الْاَجْرُ اَحَدُ الشَّيْئَيْنِ، داغه ډول اجرت دوې (دوه) څيزونو كې يو دې.وَهُوَ مَجْهُوْلٌ او هغه مجهول دې.وَالْجَهَالَةُ تُوْجِبُ الْفَسَادَ او جهالت موجب د فساد وي.بِخِلَافِ الْخِيَاطَةِ الرُّوْمِيَّةِ وَالْفَارِسِيَّةِ په خلاف د رومي او فارسي ګنډلو، لِاَنَّ الْاَجْرَ يَجِبُ بِالْعَمَلِ ځكه چې اجرت په واجبيږي عمل سره.وَعِنْدَهُ تَرْتَفِعُ الْجَهَالَةُ. اود عمل په وجه به جهالت ختميږي.اَمَّا فِىْ هٰذِهِ الْمَسَائِلِ پاتې شو دا مسائيل.يَجِبُ الْاَجْرُ بِالتَّخْلِيَةِ وَالتَّسْلِيْمِ نو په دې كې اجرت تخليه (ركاوټ لرې كول) او تسليم (سپارلو) سره واجبيږي.فَتَبْقَى الْجَهَالَةُ نو جهالت به پاته پاتې وي.وَهٰذَا الْحَرْفُ هُوَ الْاَصْلُ عِنْدَهُمَا. د صاحبينو رحمهما الله په نيز هم دا قاعده ده.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول وجه داده.چه په ذكر شوى صورتونو كې معقود عليه مجهول ده.او اجرت هم په دوې (دوه) څيزونو كې يو دې.او هغه هم مجهول دې.او جهالت موجب د فساد وي.په خلاف د رومي يا فارسي ګنډلو، چې په دې كې د اجارة فساد ځكه نشته.چه اجرت به خو د كار كاوه واجب وي.او دغه وخت به جهالت لرې كيږي.په خلاف د هغه مسئلو كوم چې ذكر شوى دى.چه ددې په ځلا كاوه او حواله كاوه سره به اجرت واجبيږي.نو جهالت به پاته پاتې وي.د صاحبينو رحمهما الله په نيز دلته كې قاعده كليه داده. ﴿ان الاجر متى وجب بالتسليم من غير عمل و لا يدرى عند التسليم أيهما يجب يفسد العقد﴾.

وَلِاَبِىْ حَنِيْفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.اَنَّهُ خَيَّرَهُ بَيْنَ عَقْدَيْنِ صَحِيْحَيْنِ مُخْتَلِفَيْنِ چې په دوې (دوه) مختلف او صحيح عقدونو كې اختيار وركړى دې.فَيَصِحُّ كَمَا فِىْ مَسْاَلَةِ الرُّوْمِيَّةِ وَالْفَارِسِيَّةِ نو صحيح به وي.لكه څنګه چې د رومي او فارسي ګنډلو په مسئله كې دى.وَهٰذَا لِاَنَّ سُكْنَاهُ بِنَفْسِهِ يُخَالِفُ اِسْكَانَهُ الْحَدَّادَ اودا ځكه چې دده پخپله اوسيدل، د اهنګر (لوهار)، د اوسولو خلاف دى.اَلَا تَرٰى اَنَّهُ لَا يَدْخُلُ ذٰلِكَ فِىْ مُطْلَقِ الْعَقْدِ آيا نه ګورې چې دا په مختلف عقد كې نه داخليږي.وَكَذَا فِىْ اَخَوَاتِهَا داغه ډول په نورو اجاراتو كې هم دى.وَالْاِجَارَةُ تُعْقَدُ لِلْاِنْتِفَاعِ او اجاره منعقد كولى شي.انتفاع دپاره.وَعِنْدَهُ تَرْتَفِعُ الْجَهَالَةُ او د انتفاع په وخت به جهالت ختميږي.

**تسهيل:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه ده مستاجر ته دوې (دوه) مختلف او صحيح عقدونو كې اختيار وركړې دې.نو لكه څنګه چې انفرادي حالت كې عقد صحيح دې.دغه ډول به مجموعي حالت كې هم صحيح وي.او مونږ مختلف عقدونه ځكه ګرځولى دى.چه د مستاجر پخپله اوسيدل، او اهنګر (لوهار) اوسول، دواړه مختلف دى.په دې وجه مختلف عقد كې اهنګر (لوهار) اوسول نه داخليږي.

وَلَوْ اَخْبَرَ اِلَى الْاِيْجَابِ بِمُجَرَّدِ التَّسْلِيْمِ او كه په خالي سپارلو سره د اجرت د ايجاب ارتيا راپيښ شو.يَجِبُ اَقَلُّ الْاَجْرَيْنِ لِلتَّيَقُّنِ نو په دوې (دوه) اجرونو كې چې كوم دې.هم هغه به واجب وي.د امله د يقين نه په دې باندې.والله اعلم بالصواب.

**تشريح:** كه صرف په حواله كاوه سره د اجرت د ايجاب ارتيا راپيښ شى.په دې طريقه چې عين مستاجره ني اوسپارلو.خو ددې نه ني لا تر اوسه نفع نه ده اوچته كړې.ترددې چې منفعت معلوم شى.نو په دوې (دوه) اجرونو كې چې كوم كم وي.هغه به واجب وي.ځكه چې دا خو يقيني دې.

## بَابُ اِجَارَةِ الْعَبْدِ

ژباړه: ( دا) باب د غلام د اجارة ( په بيان كې) دې.

تشريح: د صاحب د نهايه رحمه الله وغيره په قول چې كوم احكام آزاد وغيره سره متعلق دي، دهغې د ذكر نه د فراغت نه روسته هغه احكام ذكر كوي، كوم چې غلام سره متعلق دي، ځكه چې د غلام مرتبه د آزاد د مرتبې نه كمه وي.

## د خدمت لپاره اخستې غلام په سفر كښې د بيولو (بوتللو) حكم

قَالَ: (وَمَنْ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا لِيَخْدِمَهُ) او چاچه اجاره باندې غلام واخستلو، چه دده نه خدمت واخلي. (فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ بِهِ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ ذَلِكَ) نو هغه په سفر كې نشي بوتللې. خودا چې ددې شرط اوكړي. لِأَنَّ خِدْمَةَ السَّفَرِ اشْتَمَلَتْ عَلَى زِيَادَةِ مَشَقَّةٍ ځكه چې د سفر خدمت په زيات مشقت باندې مشتمل دي. فَلَا يَنْتَظِمُهَا الْإِطْلَاقُ، نو مطلق اجاره به دې ته ګډ نه وي. وَلِهَذَا جُعِلَ السَّفَرُ عُذْرًا په دې وجه سفر عذر ګرځولې شوې دې. فَلَا بُدَّ مِنْ اشْتِرَاطِهِ كَإِسْكَانِ الْحَدَّادِ وَالْقَصَّارِ فِي الدَّارِ، نو ددې شرط كول ضروري دي، په كور كې د اهنګر (لوهار) يا دهوبي اوسولو پشان. وَلِأَنَّ التَّفَاوُتَ بَيْنَ الْخِدْمَتَيْنِ ظَاهِرٌ، ځكه چې دواړو خدمتونو كې توپير ښكاره دې. فَإِذَا تَعَيَّنَ الْخِدْمَةُ فِي الْحَضَرِ نو كله چې د سفر نه بغير خدمت متعين شو. لَا يَبْقَى غَيْرُهُ دَاخِلًا كَمَا فِي الرُّكُوبِ نو دوهم خدمت داخل نشو، لكه ځنګه چې سوارلۍ كې دي.

تشريح: كوم غلام نې چې د خدمت لپاره نوكر ساتلې وي، هغه خپل ځان سره سفر كې نشي بوتلې. ځكه چې د حضر (اقامت) په لحاظ سره سفر كې مشقت زيات وي، نو مطلق عقد به دې ته ګډ نه وي، په دې وجه سفر د اجارې فسخ كاوه عذر ګرځولې شوې دې، تردې كه حضر كې نې خدمت لپاره اجاره باندې واخستلو، بيا سفر راپيښ شو، نو اجاره ختمولې شي، نو سفر كې د بيولو (بوتللو) شرط كول ضروري دې، لكه ځنګه چې د كور په كرايه كې د اهنګر (لوهار) يا دهوبي ساتلو شرط كول ضروري دي.

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا مَحْجُورًا عَلَيْهِ شَهْرًا) نو كس يو غلام محجور (چې د مالك د اړخه ورته دمزدورۍ اجازت نه وو) د يو مياشت لپاره اجاره باندې واخستلو. (وَأَعْطَاهُ الْأَجْرَ) و هغه ته نې اجرت وركړو. (فَلَيْسَ لِلْمُسْتَأْجِرِ) نو مستاجر ته دا اختيار نشته. (أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ الْأَجْرَ) چې دده نه اجرت واپس واخلي. وَأَصْلُهُ أَنَّ الْإِجَارَةَ صَحِيحَةٌ اسْتِحْسَانًا ددې اصل دادې، چه اجاره استحساناً صحيح ده. إِذَا فَرَغَ مِنْ الْعَمَلِ. كله چې هغه د كار نه فارغ شو. وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ لِانْعِدَامِ إِذْنِ الْمَوْلَى وَقِيَامِ الْحَجْرِ او قياس دادې، چه جائز نه وي، د آقا اجازت نه كيدلو، اود حجر قائميدلو په وجه، فَصَارَ كَمَا إِذَا هَلَكَ الْعَبْدُ نو داسې شوه، لكه چې غلام مړ شو.

تشريح: كوم غلام ته چې د آقا د اړخه د عمل اجازت نه وي، او هغه په مزدورۍ باندې لګيا شي، اود عمل نه روسته مستاجر هغه ته اجرت وركړي، روسته معلومه شوه، چه هغه محجور دې، نو مستاجر مزدوري واپس نشي اخستلې، د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز واپس اخستلې شي، قياس هم دادې، ځكه چې هركله غلام محجور دې، نو عقد صحيح نشو، نو اجرت به واجب نه وي، او دا داسې شوه، لكه چې غلام په دې خدمت سره مړشي، چه په دې صورت كې آقا ته اجرت نه ملاويږي، بلكه ددې د قيمت به حقدار وي.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّ التَّصَرُّفَ نَافِعٌ عَلَى اعْتِبَارِ الْفَرَاغِ سَالِمًا چې د غلام تصرف نافع د سلامتيا سره د فارغ كيدلو په اعتبار سره. ضَارٌّ عَلَى اعْتِبَارِ هَلَاكِ الْعَبْدِ، او نقصان ده دې د غلام هلاكيدلو په اعتبار سره. وَالنَّافِعُ مَأْذُونٌ فِيهِ كَقَبُولِ الْهِبَةِ، او د نفع په كار كې به ده ته اجازت وي، لكه هبه قبلول، وَإِذَا جَازَ ذَلِكَ او كله چې دا عقد جائز شو. لَمْ يَكُنْ لِلْمُسْتَأْجِرِ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ. نو مستاجر ته دده نه د اجرت واپس اخستلو اختيار پاتې نشو.

تشريح: وجه د استحسان داده، چه د اجارې فساد د مولا د حق د رعايت په وجه دې، اود عمل نه روسته د حق [رع]ايت هم په دې كې دې، چه اجاره صحيح او اجرت واجب وي، ددې وضاحت دادې، چه د مذكور غلام په



تصرف كې دوې (دوه) خبرې دي. ① يوه داچه هغه سلامتيا سره د خدمت نه فارغه شي، په دې اعتبار سره د مولا په حق كې نافع دې. ② دويمه داچه هغه خدمت كې هلاك شي، په دې لحاظ سره د مولا په حق كې نقصان ده دې، د نفع والا كار كې خو هغه ته اجازت دې، لكه چې د هبة قبلولو اجازت دې، نو هركله چې غلام په دې خدمت كې سلامت پاتې شو، نو ګويا آقا ده ته د اجارې اجازت وركړو، او هركله چې اجاره جائز شوه، نو مستاجر چې كوم اجرت غلام ته وركړې دې، هغه واپس نشي اخستلې.

## د غصب شوي غلام د مزدورۍ خوړلو حكم

(وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا) يو كس يو غلام غصب كړو. (فَآجَرَ الْعَبْدُ نَفْسَهُ) غلام خپل ځان اجاره باندې وركړو. (فَأَخَذَ الْغَاصِبُ الْأَجْرَ) غاصب هغه ته اجرت وركړو. (فَأَكَلَهُ) نو وې خوړلو. (فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)[1] نو په ده باندې تاوان نشته، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، (وَقَالَا: هُوَ ضَامِنٌ) صاحبين رحمهما الله فرمائي، چه هغه به ضامن وي. لِأَنَّهُ أَكَلَ مَالَ الْمَالِكِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ، ځكه چې هغه د مالك مال د هغه د اجازت نه بغير خوړلې دې. إِذْ الْإِجَارَةُ قَدْ صَحَّتْ عَلَى مَا مَرَّ. په دې وجه اجاره صحيح شوې وه. وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. أَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا يَجِبُ بِإِتْلَافِ مَالٍ مُحْرَزٍ چې تاوان د محفوظ مال په هلاكاوه باندې واجبيږي. لِأَنَّ التَّقَوُّمَ بِهِ، ځكه چې د مال تقوم هم په دې سره دې. وَهَذَا غَيْرُ مُحْرَزٍ فِي حَقِّ الْغَاصِبِ، او اجرت غاصب سره محفوظ نه دې. لِأَنَّ الْعَبْدَ لَا يُحْرِزُ نَفْسَهُ عَنْهُ ځكه چې غلام خو د خپل ذات هم ساتنه نشي كولې. فَكَيْفَ يُحْرِزُ مَا فِي يَدِهِ نو كوم چې دده په قبضه كې دې، د هغې ساتنه به څنګه كوي.. (وَإِنْ وَجَدَ الْمَوْلَى الْأَجْرَ قَائِمًا بِعَيْنِهِ أَخَذَهُ) او كه آقا اجرت بعينه موجود بيا مومي، نو وادې خلي. لِأَنَّهُ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ ځكه چې هغه خپل عين مال اوموندلو. (وَيَجُوزُ قَبْضُ الْعَبْدِ الْأَجْرَ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا) او د غلام په اجرت باندې قبضه كول جائز دي، د ټولو په قول كې. لِأَنَّهُ مَأْذُونٌ لَهُ فِي التَّصَرُّفِ عَلَى اعْتِبَارِ الْفَرَاغِ عَلَى مَا مَرَّ ځكه چې هغه ته اجازت دې، د كار نه د فارغ كيدلو په اعتبار سره، په هغه دليل چې تير شو.

تشريح: زيد غلام غصب كړو، غلام خپل ځان په مزدورۍ باندې اولګولو، غاصب دده مزدوري واخستله او وې خوړله، نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د غلام واپس كاوه په وخت به ددې مزدورۍ ضامن نه وي، د صاحبينو رحمهما الله په نيز به ضامن وي، ځكه چې د عبد محجور اجاره استحساناً صحيح ده، نو دده د مزدورۍ د آقا مال دې، چه دا غاصب بې اجازته اوخوړلو، د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې، چه ضمان د محفوظ مال په هلاكاوه واجبيږي، او غلام پخپله خپل ساتنه نشي كولې، نو د خپلې مزدورۍ به څه ساتنه اوكړي.

## د معين مودې لپاره غلام په اجاره اخستل

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا هَذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ) يو كس يو غلام په اجاره باندې واخستلو، د دوې (دوه) مياشتو دپاره. (شَهْرًا بِأَرْبَعَةٍ) يوه مياشت په عوض د څلورو درهمو، (وَشَهْرًا بِخَمْسَةٍ) و يوه مياشت په عوض د پنځو درهمو، (فَهُوَ جَائِزٌ) نو دا جائز دي. (وَالْأَوَّلُ مِنْهُمَا بِأَرْبَعَةٍ) او ړومبۍ مياشت به په عوض د څلورو درهمو وي. لِأَنَّ الشَّهْرَ الْمَذْكُورَ أَوَّلًا يَنْصَرِفُ إِلَى مَا يَلِي الْعَقْدَ تَحَرِّيًا لِلْجَوَازِ ځكه چې كوم مال وړاندې مذكور دې، هغه به هم هغه اړخ ته راګرځولې شي، كوم چې عقد سره متصل دې، د عقد جائز كولو، أَوْ نَظَرًا إِلَى تَنَجُّزِ الْحَاجَةِ يا اړتيا په دې وخت پوره كاوه په غرض سره. فَيَنْصَرِفُ الثَّانِي إِلَى مَا يَلِي الْأَوَّلَ ضَرُورَةً نو دويمه مياشت به ضرور هغه اړخ ته راګرځيږي، كوم چې ړومبۍ سره متصل دې.

تشريح: يو كس يو غلام د دوې (دوه) مياشتو لپاره په دې طريقه اجاره باندې واخستلو، چه يوه مياشت د

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في البحر (٥٩١٨) وردالمحتار (٥١١٥) ومجمع الأنهر (٥٥٢١٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٧١٢)

خلور درهمو په عوض، او يوه مياشت د پنځو درهمو په عوض ده.نو ده په عقد كي دوي (دوه) مياشتي نكره يعني عامي ذكر كړي دي.چه ددي وخت معلوم نه دي.نو په ښكاره دا عقد جائز كيدل ېكار نه دي.خود عاقل بالغ كلام چونكه فضول او بيكاره كيدلو نه بچكول ضروري دي.په دي وجه د عقد حتى الامكان جائز كيدلو په خاطر چي كومه مياشت وراندي ذكر ده.هغه به عقد سره متصل مياشت ګرځولي شي.يعني كومه مياشت چي د عقد نه روسته پيل كيږي.هم دغه به ړومبۍ مياشت منلې كيږي.او دا به د څلور درهمو عوض والا وي.كه داسي اونكړې شي.نو عقد كي داخله مياشت به مجهوله وي.حالانكه عقد اجاره د جهالت په وجه فاسديږي.او په دي وجه هم چي انسان دخپل اړتيا لپاره څه شئ اجاره باندي اخلي.او ښكاره هم داده.چه اړتيا واقع كيدل به دعقد په وخت وي.په دي وجه چي كومه مياشت في الحال پيل شي.هم دغه به ړومبۍ مياشت ګرځولي شي.او هركله چي دا ړومبۍ مياشت اوګرځولي شوه.نو اوس به دويمه مياشت لازمي هغه وي.كومه چي ددي نه روسته ده.د امام مالك او امام احمد رحمهما الله په نيز هم د مسئلي حكم هم دادي.البته د امام احمد رحمه الله بعض اصحاب اود امام شافعي رحمه الله په نيز مذكوره عقد صحيح نه دي. ﴿حتى يسمي الشهر﴾.

**تشريح:** تاج الشريعة وغيره په دي باندي دا اشكال ذكر كړي دي.چه علامه مرغيناني رحمه الله د مسئلي د جواز كومه وجه ( د عاقل كلام د بي كاره كيدو نه بچ كول،او ضرورت) ذكر كړي ده.د هغي دارومدار په دي خبره دي.چه مستاجر لفظ د شهرين په صورت د نكره ذكركړي دي.لكه چي په مبسوط د شيخ عتابي او د اسبيجابي په جامع صغير او د فقهٔ په نورو كتابونو كي هم داسي ليكلي شوي دي. ﴿إذا استاجر عبداً لشهرين شهراً باربعة و شهراً بخمسة﴾حالانكه علامه مرغيناني رحمه الله د مسئلي وضع د معرفه په صورت كي كړي ده.،، حيث قال: هذين الشهرين،، او په دي صورت كي مذكوره تعليل ثابت نه پاتي كيږي.

**جواب:** ددي ځواب كوم چي شيخ حميد الدين الضرير د هدايه په خپله حواشي كي وركړي دي.او صاحب د عنايه او او صاحب د كفايه رحمهما الله وغيره د هدايه پخپلو شروحو كي نقل كړي دي.هغه دادي.چه په كتاب كي كوم هذين الشهرين دي.دا د علامه مرغيناني رحمه الله د اړخه د مسئلي د وضع په طور نه دي.بلكه دا د مستاجر قول دي.او لام د عهد لپاره دي.ګويا موجر مستاجر ته داسي اووئيل. ﴿اجرت عبدي هذا شهرين شهراً باربعة و شهراً بخمسة﴾ ددي په ځواب كي مستاجر اووئيل. ﴿إستاجرت هذين الشهرين شهراً باربعة و شهراً بخمسة﴾ نو،، هذين الشهرين،، هم دي شهرين نكره اړخ ته منصرف دي.كوم چي د موجر په ايجاب كي داخل دي.نو تنكير پخپل ځاني باندي پاته پاتي شو.او تعليل مذكور ثابت پاتي شو.

خو صاحب د نتائج فرماي.چه مذكوره اشكال هم بي وجه دي.او مذكوره ځواب هم بي كاره دي.اشكال خو ځكه بي وجه دي.چه تعليل د ذكر شوي مياشتو په تنكير باندي موقوف نه دي.بلكه دا خو ﴿شهراً باربعة و شهراً بخمسة﴾ كوم شهراً چي نكره ده.هغي سره هم تماميږي.او مذكوره ځواب ځكه بي كاره دي.چه په كتاب كي كوم ،،هذين الشهرين،، دي.كه دا د مستاجر قول وي.نو د علامه مرغيناني رحمه الله په ﴿و من استاجر عبداً﴾ كي عبد نكره راوړل به په ځاني (صحيح) نه وي.بلكه د شهرين معرفه راوړلو په ځاني به عبد معرفه راوړل زياته بهتره كيدل هغه وخت متصور كيداي شي.كله چي عقد كي د موجر كلام د مستاجر د كلام نه وړاندي وي.حالانكه دا وي.ځكه چي دي په دي سره دا خبره معلومه شوه.چه مستاجر كوم غلام اجاره باندي اخستي دي.دا هم هغه غلام دي.كوم ته چي موجر اجاره باندي وركاوه لپاره وئيلي وو.ددي نه علاوه د مستاجر په قول كي لام د عهد لپاره څه ضروري نه ده.بلكه متعاقدينو كي چي څوك هم وړاندي كلام اوكړي.هم د هغه كلام به ايجاب ګرځولي شي.او كله ئې چي دوهم قبول كړي.نوعقد به لازميږي.

بيا ډيره ممكن ده.چه علامه مرغيناني رحمه الله د عامو كتابونو خلاف،،هذين الشهرين،،معرف ځكه راوړلي وي. چي دا معلومه شي.چه د لفظ شهرين معرفه كيدلو سره د مسئلي په حكم كي هيڅ توپير نه راځي. بلكه په دي حكم كي د شهرين تعريف او تنكير دواړه برابر دي.حالانكه،،شهراً باربعة و شهراً بخمسة ،، كي لفظ شهراً



نكره موجود ده.

**تنبيه:** د ذكرشوي مسئلي چي كوم حكم بيان كړي شوي دي.هغه صرف دي صورت سره خاص نه دي.چه اجير غلام وي.بلكه كه اجير څوك آزاد سړي وي.بيا هم دا حكم دي.او دليل هم بعينه هم هغه دي.كوم چي ذكر دي.نو ددي مسئلي په ،،باب اجارة العبد،، كي د راوړلو هيڅ څه خاص وجه ښكاره نشته.ځكه چي په دي باب كي خو د هغه احكامو ذكر مناسب دي.چه د هغي غلام سره څه اختصاص نشته كتاب كي بنكاره ده.چه په تيرو شوو بابونو كي چي كوم احكام تير شوي دي.په هغي كي ډير احكام داسي دي.كوم چي آزاد او غلام كي مشترك دي.

ممكن ده.چه څوك دا اوواني.چه چونكه د آزاد په نسبت دغلام اجير كيدل زيات وي.ځكه ئې د زيات استعمال لحاظ كاوه په وجه دي باب كي ذكركړو.خو دا وئيل ځكه صحيح نه دي.چه اكثريت نا قابل تسليم دي.ځكه چي د غلام په نسبت د آزاد اجير كيدل زيات ښكاره دي.ځكه چي يو خو آزاد سړي ته تصرفاتو كي استقلال حاصل دي.دويمه داچه پخپل ذات باندي او پخپل اهل و عيال باندي د خرچ كاوه احتياج هم د غلام په نسبت آزاد ته زيات وي.

## په ماهانه كرايه باندي غلام په اجاره اخستل

**﴿وَمَنْ اسْتَأْجَرَ عَبْدًا شَهْرًا بِدِرْهَمٍ﴾** يو كس يو غلام اجاره باندي واخستلو.د يو درهم ماهانه كرايه باندي. **﴿فَقَبَضَهُ فِي أَوَّلِ الشَّهْرِ﴾** و په پيل مياشت كي ئې په دي قبضه اوكړله **﴿ثُمَّ جَاءَ آخِرَ الشَّهْرِ﴾** بيا په آخيره مياشت كي راغئ **﴿وَهُوَ آبِقٌ أَوْ مَرِيضٌ﴾** په داسي حال كي چي هغه تختيدلي وو.يا بيمار وو. **﴿فَقَالَ الْمُسْتَأْجِرُ﴾** نو مستاجر اووئيل **﴿أَبَقَ أَوْ مَرِضَ حِينَ أَخَذْتَهُ﴾** چي تركوم وخت نه ما دي اخستي دي.دي د هغه وخت نه تختيدلي وو يا بيمار شوي وو. **﴿وَقَالَ الْمَوْلَى﴾** و آقا اووئيل. **﴿لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ إِلَّا قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَنِي بِسَاعَةٍ﴾** چي داسي نه دي شوي.مګر ستا د راتګ و نه لږ شان وړاندي، **﴿وَإِنْ جَاءَ بِهِ وَهُوَ صَحِيحٌ﴾** او كه هغه غلام روغ راوستلي وي. **﴿فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُسْتَأْجِرِ﴾** نو د مستاجر قول به قبول وي. **﴿فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُؤَجِّرِ﴾** نود موجر قول به قبول وي.

**تشريح:** زيد يو مياشت لپاره غلام اجرت باندي واخستلو.او په پيل مياشت كي ئې په دي قبضه اوكړله.ددي نه روسته د مياشتي په ختميدو كي ئې اووئيل.چه دا غلام په پيل كي تختيدلي وو.يا بيمار شوي وو.موجر ( آقا) ددي نه انكار اوكړو.او وي وئيل.چه داسي نه دي شوي. بلكه دي خو اوس ستا د راتګ ونه لږ شان وړاندي راتختيدلي يا بيمار شوي دي.نو په دي صورت كي به حال حكم جوړولي شي.يعني كه د جنګ جګړي په وخت غلام تختيدلي وي.يا بيمار وي.نود مستاجر قول به سره دده د قسمه معتبر وي.او اجرت به واجب نه وي.او كه هغه غلام په دي حالت كي روغ راوستي وي.نود موجر قول به قبول وي.د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز هم دا حكم دي.

**﴿لِأَنَّهُمَا اخْتَلَفَا فِي أَمْرٍ مُحْتَمَلٍ﴾** ځكه چي دوى دواړو په يو محتمل امر كي اختلاف كړي دي. **﴿فَيَتَرَجَّحُ بِحُكْمِ الْحَالِ،﴾** نود حال په حكم سره به ترجيح وركولي شي. **﴿إِذْ هُوَ دَلِيلٌ عَلَى قِيَامِهِ مِنْ قَبْلُ﴾** ځكه دا دليل دي.چه داسي حالت د وړاندي نه قائم وو.

**تشريح:** د مذكوره حكم وجه داده.چه موجر او مستاجر دواړو پو يو محتمل امر كي اختلاف كړي دي.نو موجوده حالت سره به ترجيح وركولي شي.ځكه دا ددي خبري دليل دي.چه داسي حالت وړاندي نه قائم وو.په دي دا اشكال كيږي.چه حال زموږ په نيز استحقاق لري كونكي وي.حق ثابتونكي نه وي.لكه څنګه چي دلائلو سره معلوم شوي دي.او كله چي مستاجر غلام په داسي حالت كي راوستلو.چه هغه روغ دي.او په دي صورت كي دموجر قول معتبر شو.ترڅو چي موجر د اجرت مستحق شو.نو حال دافع (لري كونكي دحق) نشو.بلكه موجب د استحقاق شو.

وَهُوَيَصْلُحُ مُرَجِّحًا إِنْ لَمْ يَصْلُحْ حُجَّةً فِي نَفْسِهِ. او موجوده حالت ترجيح والا کيداي شي. اګرچه فی نفسه دليل نشي کيدي. أَصْلُهُ الِاخْتِلَافُ فِي جَرَيَانِ مَاءِ الطَّاحُونَةِ وَانْقِطَاعِهِ ددي بنا (بنياد) هغه اختلاف دي. کوم چي د جرندي د اوبو جاري کيدلو او بنديدلو کي واقع شوي وو. والله سبحانه و تعالى اعلم.

**تشريح:** په دي سره هم ددي ځواب دي. چه حال اګرچه پخپله صالح دليل نه دي. يعنى دا دځه خبري ثابتولو لائق نه دي. البته دا ترجيح والا کيدلو لائق دي. او دلته داجرت د استحقاق موجب عقد اجاره ده. په موده کي دننه غلام سپارلو سره. خو ددي د ساقطولو څه موجب امر راپيښ شوي دي او که نه؟ په دي اره کي د مستاجر او موجر په کلام کي تعارض دي. نو حال د موجر د کلام لپاره ترجيح والا جوړ کړي شو. موجب د استحقاق جوړ نکړي شو. «لأن فيه ف الحقيقة دافعة لا موجبة» د مذکوره اختلاف بنا (بنياد) د جرندي په اوبو کي واقع کيدلو والا اختلاف دي. که مستاجر اووائي. چه اوبه بندي شوي وي. او موجر اووائي. چه نه وي بندي شوي. نو في الحال که اوبه جاري وي. نود موجر او که بندي وي. نو د مستاجر قول به قبلولي شي.

## (بَابُ الِاخْتِلَافِ فِي الْإِجَارَةِ)

ژباړه: (دا) باب د موجر او مستاجر د اختلاف (په بيان کي) دي.

**تشريح:** اتفاق د متعاقدينو چي دا اصل دي. ددي د احکامو نه د فراغت نه روسته د متعاقدينو د اختلاف احکام بيانوي. چه دا فرع ده. «لأن إذا الإختلاف إنما يكون بعارض».

### د درزي او د کپړو د مالك په منځ کښي د اختلاف مسئله

قَالَ: (وَإِذَا اخْتَلَفَ الْخَيَّاطُ وَرَبُّ الثَّوْبِ کله چي اختلاف اوکړو. درزي او د کپړو مالك، فَقَالَ رَبُّ الثَّوْبِ روسته د کپړو مالك، أَمَرْتُكَ أَنْ تَعْمَلَهُ قَبَاءً چي ما د قباء (کوټ) جوړولو حکم درکړي وو. وَقَالَ الْخَيَّاطُ درزي اووئيل بَلْ قَمِيصًا چي د قميص حکم دي راکړي وو. أَوْقَالَ: صَاحِبُ الثَّوْبِ لِلصَّبَّاغِ يا د کپړو مالك رنګ کونکي ته اووئيل. أَمَرْتُكَ أَنْ تَصْبُغَهُ أَحْمَرَ چي ما د سور رنګ کاوه وئيلي وو. فَصَبَغْتَهُ أَصْفَرَ تا زيړ رنګ ورکړي دي. وَقَالَ الصَّبَّاغُ رنګ کونکي اووئيل. لَا بَلْ أَمَرْتَنِي أَصْفَرَ چي نا بلکه تا د زيړ رنګ حکم راکړي وو. فَالْقَوْلُ لِصَاحِبِ الثَّوْبِ) نود کپړي د مالك قول به معتبر وي. لِأَنَّ الْإِذْنَ يُسْتَفَادُ مِنْ جِهَتِهِ، ځکه چي اجازت هم دده د اړخه مستفاد کيږي. أَلَا تَرَى آيا نه ګوري، أَنَّهُ لَوْ أَنْكَرَ أَصْلَ الْإِذْنِ که هغه داصل اجازت انکار اوکړي. كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو هم دده قول قبلولي شي. فَكَذَا إِذَا أَنْكَرَ صِفَتَهُ، لَكِنْ يَحْلِفُ نو هم دغه ډول کله چي هغه ددي دصفت انکار اوکړي. خو دده څخه به قسم اخستلي شي. لِأَنَّهُ أَنْكَرَ شَيْئًا ځکه چي ده د داسي شي انکار کړي دي. لَوْأَقَرَّبِهِ که هغه ددي اقرار اوکړي لَزِمَهُ. نو په ده باندي لازميږي. قَالَ: (وَإِذَا حَلَفَ او کله چي هغه قسم اوخوړلو. فَالْخَيَّاطُ ضَامِنٌ) نو درزي به ضامن وي. وَمَعْنَاهُ مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ او ددي مطلب هغه دي. کوم چي وړاندي تير شوي دي. أَنَّهُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ، چي د مالك اختيار دي. که غواړي. تاوان دي واخلي. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَهُ او که غواړي. کپړه دي واخلي. وَأَعْطَاهُ أَجْرَمِثْلِهِ، درزي ته دي ددي اجر مثل ورکړي. وَكَذَا يُخَيَّرُ فِي مَسْأَلَةِ الصَّبْغِ إِذَا حَلَفَ دغه ډول د رنګ په مسئله کي اختيار دي. کله چي هغه قسم اوخوري. إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ الثَّوْبِ أَبْيَضَ، که غواړي. د سپيني کپړي د قيمت تاوان دي واخلي. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الثَّوْبَ که غواړي. کپړه دي واخلي. وَأَعْطَاهُ أَجْرَمِثْلِهِ ددي اجرمثل دي ورکړي. لَا يُجَاوَزُ بِهِ الْمُسَمَّى. چي دا دمسمى نه زيات نشي. وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: په بعضو نسخو کي دي. يُضَمِّنُهُ مَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ، چي رنګ سره کوم زياتوالي راغلي دي. هغه دي ورکړي. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْغَصْبِ. ځکه چي رنګ کونکي په منزله د غاصب دي.

**تشريح:** مالك درزي ته اووئيل چه ما د قباء (کوټ) ګنډلو لپاره وئيلي وو. تا کميص ګنډلي دي. يا ني رنګ



کونکي ته اووئيل. چه ما کپړه د سور رنګ کاوه لپاره وئيلي وو. تا زيړ رنګ ورکړي دي. اجير وائي. چه تا ځنګه وئيلي وو. ما هم هغه شان کړي دي. نود مالك قول به معتبر وي. امام مالك، امام شافعي، او ابوثور ﷺ هم ددي قائل دي. ځکه چي اجير ته د عمل د اجازت ثبوت د مالك د اړخه کيږي. تردي که هغه د اصل اجازت انکار اوکړي. نو هم دده قول قبليږي. نو په صفت د اجازت کي به هم دده قول قبول وي. امام احمد. ابن ليلى او په يو قول کي د امام شافعي رحمه الله په نيز د اجير قول به قبول وي. او بعض شوافعو يو دريم قول هم ذکر کړي دي. چه د دوي (دوه) بيع کونکو پشان به دوی دواړه هم قسم خوري. اود قسم نه روسته به داجير نه ضمان او مالك نه اجرت ساقطولي شي.

(وَإِنْ قَالَ: صَاحِبُ الثَّوْبِ که د کپړي مالك اووئيل. عَمِلْتَهُ لِي بِغَيْرِ أَجْرٍ چي تا ما لپاره مفت کار کړي دي. وَقَالَ الصَّانِعُ کاريګر اووئيل. بِأَجْرٍ اجرت باندي دي راکړي دي. فَالْقَوْلُ قَوْلُ صَاحِبِ الثَّوْبِ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود کپړي دمالك قول به معتبر وي. لِأَنَّهُ يُنْكِرُ تَقَوُّمَ عَمَلِهِ ځکه چي هغه دده د کار د قيمتي کيدلو منکر دي. إِذْ هُوَ يَتَقَوَّمُ بِالْعَقْدِ ځکه چي قيمتي کيدل عقد سره کيږي. وَيُنْكِرُ الضَّمَانَ او هغه دضمان نه هم منکر دي. وَالصَّانِعُ يَدَّعِيهِ او کاريګر د دواړو دعوه کوي. وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ او قول د منکر قبلولي شي.

**تشريح:** مالك اووئيل. چه تا ماله دا کار مفت کړي دي. اجير وائي. نا په اجرت مي کړي دي. د امام ابوحنيفه او بعضو شوافعو رحمهم الله په نيز به دمالك قول معتبر وي. ځکه چي هغه دده د کار قيمتي کيدلو نه منکر دي. ځکه چي تقويم به د عقد په ذريعه کيږي. او دلته کي د سره عقد نشته. حالانکه دي بلا اجرت د عمل مدعي دي. اوعمل بلا اجرت خالص کومك وي. او مالك د ضمان يعني د اجر د وجوب منکر دي. او کاريګر ددي دواړو خبرو مدعي دي. او قول د منکر قول وي. نو کاريګر له پکار دي. چه هغه پخپله دعوه باندي ګواهي قائم کړي. د امام شافعي رحمه الله په نيز د کاريګر قول معتبر وي.

(وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. إِنْ كَانَ الرَّجُلُ حَرِيفًا لَهُ) أَيْ خَلِيطًا لَهُ که دا سړي د کاريګر هم پيشه او شريکوال وي. (فَلَهُ الْأَجْرُ وَإِلَّا فَلَا) نو دده لپاره به اجرت وي. ګني نه به وي. لِأَنَّ سَبْقَ مَا بَيْنَهُمَا يُعَيِّنُ جِهَةَ الطَّلَبِ بِأَجْرٍ جَرْيًا عَلَى مُعْتَادِهِمَا ځکه چي ددوی خپل منځ کي مخکني معاملات اجرت سره د طلب جهت معين کوي. ددوی د معمول مطابق. (وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائي. إِنْ كَانَ الصَّانِعُ مَعْرُوفًا بِهَذِهِ الصَّنْعَةِ بِالْأَجْرِ که کاريګر په دي پيشه کي اجرت باندي کار کاوه سره مشهور وي. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ) نو هم دده قول به معتبر وي. لِأَنَّهُ لَمَّا فَتَحَ الْحَانُوتَ لِأَجْلِهِ ځکه چي هرکله ده دوکان هم ددي لپاره کلاو کړي دي. جَرَى ذَلِكَ مَجْرَى التَّنْصِيصِ عَلَى الْأَجْرِ اعْتِبَارًا لِلظَّاهِرِ، نو دا په اجرت باندي د تصريح قائم مقام شو. د ښکاره اعتبار کاوه سره. وَالْقِيَاسُ مَا قَالَهُ أَبُوحَنِيفَةَ او قياس هغه دي. کوم چي امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل. لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ. ځکه چي هغه منکر دي. وَالْجَوَابُ عَنِ اسْتِحْسَانِهِمَا او د صاحبينو رحمهما الله د استحسان ځواب دادي. أَنَّ الظَّاهِرَ لِلدَّفْعِ، چي ښکاره (حال) د دفع کاوه لپاره وي. وَالْحَاجَةُ هَاهُنَا إِلَى الِاسْتِحْقَاقِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ او دلته کي اړتيا د استحقاق دي.

**تشريح:** امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. که کاريګر د مالك هم پيشه او شريکوال وي. يعني په دوی کي لين دين او اجرت سره معامله کيږي. نو اجرت به ملاويږي. ګني نه به ملاويږي. ځکه مخکي چي دډوی په منځ کي کومه معامله وه. هغه ددي خبري تائيد کوي. چه دا معامله به هم ددوی د معمول (او عادت) مطابق اجرت باندي واقع شوي وي.

امام محمد، امام مالك او امام احمد رحمهم الله فرمائي. که کاريګر ددي پيشي دوکان کلاو کړي وي. او په اجرت باندي کار کاوه کي مشهور وي. نو دده قول به معتبر وي. ګني د مالك قول به قبلولي شي. ځکه چي هرکله ده دوکان ددي کار لپاره کلاو کړي دي. نو په ښکاره نظر دا په اجرت باندي د صراحت قائم مقام دي. خو قياس هم هغه دي. کوم چي امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلي دي. ځکه چي مالك منکر دي.

جواب: اود صاحبينو داستحسان ځواب دادې چه ښکاره حال صرف د دفع کاوه لپاره کافي وي.په دې سره استحقاق نه ثابتيږي.او دلته کې کاريګر ته د خپل استحقاق ثابتولو ارتيا دې.نو داسې دليل راوړل پکار دي.چه هغې سره استحقاق ثابت شي.او هغه شرعي ګواهي ده.مفتي به قول

فائده: په درمختار کې دي.چه فتوی د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول ده.او په تبيين، تنوير، محيط او شرح شاهان وغيره کې دي.چه فتوی د امام محمد رحمه الله په قول ده.په نهايه، کفايه، اوغايه کې د شيخ الاسلام رحمه الله فتوی هم د امام محمد رحمه الله په قول باندې منقول ده.

## باب فسخ الإجارة

ژباړه: (دا) باب د اجارې د فسخ (په بيان کې) دې.

تشريح: د مخکنو بابونو نه ددې باب د مؤخر کاوه وجه مناسبت بالکل ښکار ده.ځکه چې فسخ د عقد، د عقد د ثبوت نه روسته وي. ،،فبالضرورة هو متاخر،،

### د کرايه د کور دعيب په وجه د اجارې فسخ کولو حکم

قَالَ: (وَمَنْ اسْتَأْجَرَ دَارًا) چا چې يو کور اجاره باندې واخستلو. فَوَجَدَ بِهَا عَيْبًا بيا ئې په دې کې داسې عيب اوموندلو. يَضُرُّ بِالسُّكْنَى چې دا داوسيدلو لپاره نقصان ده دي. فَلَهُ الفَسْخُ) نو ده ته د فسخ کاوه اختيار شته. لِأَنَّ المَعْقُودَ عَلَيْهِ المَنَافِعُ، ځکه چې معقود عليه منافع دي. وَأَنَّهَا تُوجَدُ شَيْئًا فَشَيْئًا چې دا په لړه لړه موندلې کيږي. فَكَانَ هَذَا عَيْبًا حَادِثًا قَبْلَ القَبْضِ نودا د قبضې نه وړاندې پيدا کيدونکې عيب شو. فَيُوجِبُ الخِيَارَ كَمَا فِي البَيْعِ نو موجب دخيار به وي. ثُمَّ المُسْتَأْجِرُ إِذَا اسْتَوْفَى المَنْفَعَةَ بيا کله چې مستاجر منفعت حاصل کړو. فَقَدْ رَضِيَ بِالعَيْبِ نو هغه په عيب باندې راضي شو. فَيَلْزَمُهُ جَمِيعُ البَدَلِ كَمَا فِي البَيْعِ، نو په هغه به پوره عيب لازم وي.لکه څنګه چې بيع کې کيږي. وَإِنْ فَعَلَ المُؤَجِّرُ مَا أَزَالَ بِهِ العَيْبَ او که موجر داسې اصلاح اوکړله.چه په دې سره عيب ختم شو. فَلَا خِيَارَ لِلْمُسْتَأْجِرِ لِزَوَالِ سَبَبِهِ. نو مستاجر ته به اختيار نه وي.د سبب ختميدلو په وجه.

تشريح: يوکس يوکور په اجاره واخستلو.بيا ئې په دې کې داسې عيب اوموندلو.چه دا د اوسيدلو لپاره ضررناك دې.نو مستاجر ته به د عقد فسخ کاوه اختيار وي.ځکه چې معقود عليه منافع دي.او هغه په لړه لړه موجود کيږي.نودا عيب د قبضه نه وړاندې پيدا شو.نو ده ته به اختيار حاصل وي.لکه څنګه چې بيع کې کيږي.بيا که مستاجر منفعت حاصل کړو.نو هغه عيب سره راضي شو.په دې وجه د احنافو، امام مالك، امام احمد او د امام شافعي رحمهم الله په ښکاره قول کې به دده په ذمه پوره عوض لازم وي.لکه څنګه چې بيع کې دي.که اخستونکې عيب سره راضي شي.نو پوره ثمن به واجب وي.او که د عقد اجاره ماتولو نه وړاندې موجر داسې اصلاح اوکړله.چه په دې سره عيب ختم شو.نو مستاجر ته به د فسخ اختيار نه وي.ځکه چې ددې سبب ختم شوې دې.او هغه ددې اخستونکې جوړ شوې دې.

### د اجارې د فسخ بعض صورتونه

قَالَ: (وَإِذَا خَرِبَتِ الدَّارُ أَوِ انْقَطَعَ شُرْبُ الضَّيْعَةِ أَوِ انْقَطَعَ المَاءُ عَنِ الرَّحَى كله چې کور وران شي.يا د اوبه خور د زمکې يا د جرندې اوبه بندې شي. انْفَسَخَتِ الإِجَارَةُ) نو اجاره به فسخ کيږي. لِأَنَّ المَعْقُودَ عَلَيْهِ قَدْ فَاتَ، ځکه چې معقود عليه فوت شو. وَهِيَ المَنَافِعُ المَخْصُوصَةُ او هغه مخصوص منافع دي. قَبْلَ القَبْضِ چې د قبضې نه وړاندې لاړلې. فَشَابَهَ فَوْتَ المَبِيعِ قَبْلَ القَبْضِ وَمَوْتَ العَبْدِ المُسْتَأْجَرِ. نود قبضې نه وړاندې د مبيع فوت کيدلو يا کرايه باندې د اخستې شوي غلام مړکيدلو مشابه شو.

تشريح: عقد اجاره په يو څو امورو سره فسخ کيږي.

د اجاره فسخ کولو ؤومبې صورت: يو داسې عيب پيدا شي.چه هغې سره منفعت فوت شي.چه ددې تصريح



په وړاندې صفحه باندې تير شوې دې.لکه کور ورانيدل، د جرندې يا د زمکې د فصل د اوبو بنديدل وغيره. ځکه دا داسې دي.لکه د قبضې نه وړاندې مبيع فوت شي.نو بيع فسخ کيږي.يا لکه په اجاره باندې اخستې شوې غلام مړ شي.آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دي.

وَمِنْ أَصْحَابِنَا مَنْ قَالَ: زمونږ بعضو اصحابو ونيلي دي. إِنَّ العَقْدَ لَا يَنْفَسِخُ، چې عقد نه فسخ کيږي. لِأَنَّ المَنَافِعَ قَدْ فَاتَتْ عَلَى وَجْهٍ يُتَصَوَّرُ عَوْدُهَا ځکه چې منافع په داسې طريقه فوت شوي دي.چه ددې واپس کيدل متصور دي. فَأَشْبَهَ الإِبَاقَ فِي البَيْعِ قَبْلَ القَبْضِ. نو په بيع کې د قبضې نه وړاندې د غلام د تختيدلو مشابه شو.

تشريح: زمونږ دمشائخو نه شيخ الاسلام او شمس الائمه سرخسي رحمهما الله وغيره ونيلي دي.چه اجاره پخپله نه فسخ کيږي.البته د فسخ کاوه قابل جوړيږي.ځکه چې د منافعو زوال په داسې طريقه شوې دې. چې ددې واپس کول ناممکن دي.نو داسې شوه.لکه په بيع کې د قبضې نه وړاندې مبيع غلام اوتختي.چه عقد بيع نه فسخ کيږي.بلکه مشتري ته د فسخ اختيار حاصليږي.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رحمه الله نه روايت دې. أَنَّ الآجِرَ لَوْ بَنَاهَا که موجر دا جوړ کړو. لَيْسَ لِلْمُسْتَأْجِرِ أَنْ يَمْتَنِعَ نو مستاجر ته د منع کيدلو اختيار دې. وَلَا لِلْآجِرِ، موجر ته نه دې. وَهَذَا تَنْصِيصٌ مِنْهُ عَلَى أَنَّهُ لَمْ يَنْفَسِخْ لَكِنَّهُ يُفْسَخُ دا ددوی دارخه تصريح ده.چه عقد نه دې فسخ شوې خو قابل د فسخ شو. (وَلَوِ انْقَطَعَ مَاءُ الرَّحَى، که د جرندې اوبه بندې شوې. وَالبَيْتُ مِمَّا يُنْتَفَعُ بِهِ لِغَيْرِ الطَّحْنِ او جرندې کور داسې دې.چه د اوړه کاوه نه علاوه ددې نه بله څه نفع اخستلې شي. فَعَلَيْهِ مِنَ الأَجْرِ بِحِصَّتِهِ) نو مستاجر باندې به ددې په حساب سره اجرت واجب وي. لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنَ المَعْقُودِ عَلَيْهِ. ځکه چې دا کور هم د معقود عليه يوه برخه ده.

تشريح: په دې دليل چې هشام د امام محمد رحمه الله نه روايت کړې دې چه د کور ړيوتلو نه روسته موجر دا جوړ کړو.نو مستاجر ته به د اخستلو، او موجر ته به د ور کاوه نه د انکار اختيار نه وي.دا قول صريح دې.چه عقد اجاره نه وه فسخ شوې.البته د فسخ قابل جوړه شوې وه.کافي کې دي.چه هم دا اصح ده.کومو مشائخو چې ونيلي دي.چه اجاره فسخ کيږي.د هغوی استدلال هغه دې.کوم چې امام محمد رحمه الله په کتاب البيوع کې ذکر کړې دې. «لو سقطت الدار فله أن يخرج سواء كان صاحب الدار حاضرا او غائبا»

### په متعاقدينو کښې د يو په مرګ سره د عقد اجاره حکم

قَالَ: (وَإِذَا مَاتَ أَحَدُ المُتَعَاقِدَيْنِ کله چې متعاقدينو کې يو کس مړ شو. وَقَدْ عَقَدَ الإِجَارَةَ لِنَفْسِهِ و حال داچه اجاره ده دخپل ځان لپاره تړلې وه. انْفَسَخَتْ) نو اجاره به فسخ کيږي. لِأَنَّهُ لَوْ بَقِيَ العَقْدُ ځکه که دا عقد پاته پاتې شي. تَصِيرُ المَنْفَعَةُ المَمْلُوكَةُ بِهِ أَوِ الأُجْرَةُ المَمْلُوكَةُ لِغَيْرِ العَاقِدِ مُسْتَحَقَّةً بِالعَقْدِ، نو دده منفعت مملوکه يا اجرت مملوکه به ددې عقد به د د اسې سړي مستحق وي.چه هغه عقد کونکې نه دې. لِأَنَّهُ يَنْتَقِلُ بِالمَوْتِ إِلَى الوَارِثِ ځکه چې استحقاق به د مرګ په وجه وارث اړخ ته منتقل کيږي. وَذَلِكَ لَا يَجُوزُ او دا جائز نه ده. (وَإِنْ عَقَدَهَا لِغَيْرِهِ وکه د بل چا لپاره ئې تړلې وي. لَمْ تَنْفَسِخْ) مِثْلُ الوَكِيلِ وَالوَصِيِّ وَالمُتَوَلِّي فِي الوَقْفِ لِانْعِدَامِ مَا أَشَرْنَا إِلَيْهِ مِنَ المَعْنَى نو نه به فسخ کيږي.لکه وکيل، وصی او متولی د وقف.په وجه د معدوم کيدلو دهغه معنی کوم اړخ ته چې موږ اشاره کړې ده.

تشريح: دوهم صورت: که په موجر او مستاجر کې يوکس مړشي.چه هغه عقد اجاره د خپل ځان لپاره کړې وي.(د بل چا د اړخه وکيل يا وصی نه وو) نو د احنافو، شعبي، ثوري، ابوسليمان او د ليث بن سعد رحمهم الله په نيز اجاره فسخ کيږي.که موجر مړ شي.نو اجاره به ځکه فسخ کيږي.چه د مرګ نه روسته شئ دده د وارثانو شو.اوس که مستاجر ددې نه نفع حاصله وي.نود غير د ملك څخه به منتفع کيدل لازميږي.او دا جائز نه ده.اوکه مستاجر مړشي.نو ځکه به فسخ وي.چه په دې صورت کې د غير ملك نه د اجرت اداکول

لازميږي. اودا هم جائز نه ده. البته که اجاره د غير لپاره وي. مثلاً يو وکيل د موکل لپاره کړې وه. يا وصيت کونکي د يتيم لپاره کړې وه. يا عقد کونکي متولي د وقف وو. نو په دواړو عقد کونکو کي د يو په مرګ سره اجاره نه فسخ کيږي. ځکه چي په دې صورت کي د ملك غير نه منتفع کيدل يا اجرت اداکول نه لازميږي. د آئمه ثلاثه، ابن سيرين، اياس بن معاويه، عثمان بتي، اود ابوثور رحمهم الله په نيز اجاره په يو حال کي هم نه فسخ کيږي. بلکه وارث به قائم مقام وي. ځکه چي ددوی په نيز منافع د اعيانو پشان دي. او اجاره عقد لازم دي. «فلا تنفسخ بالموت».

قَالَ: (وَيَصِحُّ شَرْطُ الْخِيَارِ فِي الْإِجَارَةِ) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَصِحُّ لِأَنَّ الْمُسْتَأْجِرَ لَا يُمْكِنُهُ رَدُّ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ بِكَمَالِهِ لَوْ كَانَ الْخِيَارُ لَهُ لِفَوَاتِ بَعْضِهِ، وَلَوْ كَانَ لِلْمُؤَجِّرِ فَلَا يُمْكِنُهُ التَّسْلِيمُ أَيْضًا عَلَى الْكَمَالِ، وَكُلُّ ذَلِكَ يَمْنَعُ الْخِيَارَ.
او صحيح ده. په اجاره کي شرط خيار، امام شافعي رحمه الله فرماني، چه صحيح نه دي. ځکه چي مستاجر ته پوره معقود عليه واپس کول ممکن نه دي. کله چي خيار دده لپاره وي. د بعض معقود عليه فوت کيدلو په وجه. او که خيار موجر لپاره وي. نو هغه هم معقود عليه نشي سپارلي. او دا واړه اختيار منع کوي.

**تشريح: دريم صورت⊛** زموږ په نيز اجاره کي خيارشرط کول صحيح دي. نو که موجر يا مستاجر لپاره خيار شرط وي. نو هغه ددې په وجه اجاره فسخ کولي شي. د امام شافعي رحمه الله په نيز عقد اجاره کي خيار کيدل صحيح نه دي. ځکه چي مستاجر لپاره پوره معقود عليه واپس کول ناممکن دي. ځکه چي معقود عليه فوت شو يعني که خيار ثابت وي. نو د خيار په موده کي چي کوم منافع فوت شو. د هغې واپس کول ممکن نه دي. حالانکه د اختيار په وجه کل واپس کول پکار دي. اوکه خيار موجر لپاره وي. نو هغه هم پوره معقود عليه نشي سپارلي. ځکه چي دخيار په موده کي څه منافع تير شو. نو ګويا دحواله کاوه نه وړاندې بائع سره څه مبيع هلاك شو. او په دې کي هريو د خيار د ثبوت نه مانع دي.

وَلَنَا زموږ دليل دادې. أَنَّهُ عَقْدُ مُعَامَلَةٍ چي دا يو عقد معامله ده. لَا يُسْتَحَقُّ الْقَبْضُ فِيهِ فِي الْمَجْلِسِ چي په دې کي مجلس کي دننه قبضه نه واجبيږي. فَجَازَ اشْتِرَاطُ الْخِيَارِ فِيهِ كَالْبَيْعِ نو په دې کي د خيار شرط لګول جائز دې. لکه څنګه چي بيع کي جائز دي. وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا دَفْعُ الْحَاجَةِ، او په دواړو کي جامع وجه اړتيا دفع کول دی. وَفَوَاتُ بَعْضِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ فِي الْإِجَارَةِ لَا يَمْنَعُ الرَّدَّ بِخِيَارِ الْعَيْبِ، او په اجاره کي د بعض معقود عليه فوت کيدل، د خيار عيب په وجه واپس کول نه منع کوي. فَكَذَا بِخِيَارِ الشَّرْطِ، دغه ډول د خيار شرط په وجه به هم واپسی نه منع کوي. بِخِلَافِ الْبَيْعِ، په خلاف د بيع، وَهَذَا لِأَنَّ رَدَّ الْكُلِّ مُمْكِنٌ فِي الْبَيْعِ دُونَ الْإِجَارَةِ او دا ځکه چي بيع کي پوره واپس کول ممکن دي. اجاره کي نه دي. فَيُشْتَرَطُ فِيهِ دُونَهَا نو په بيع کي د پوره واپسی شرط کړې شوه. په اجاره کي نشو. وَلِهَذَا يُجْبَرُ الْمُسْتَأْجِرُ عَلَى الْقَبْضِ په دې وجه به مستاجر مجبوره کولي شي. په قبضه باندې. إِذَا سَلَّمَ الْمُؤَجِّرُ بَعْدَ مُضِيِّ بَعْضِ الْمُدَّةِ کله چي اوسپاري موجر د بعض مودې تيريدلو نه پس.

**تشريح:** زموږ دليل دادې. چه اجاره يو عقد معاوضه ده. (د نکاح پشان نه ده). چه ددې لپاره په مجلس کي قبضه کول ضروري نه دي. (نودا د صرف او سلم پشان هم نه دي). نو د بيع پشان به په دې کي هم خيارشرط صحيح وي. او په بيع او اجاره کي جامع وجه اړتيا دفع کول دي. چه دوې (دوه) دړې ورځې سوچ او فکر اوکړي. چه خساره (او تاوان) اونشي. او که په اجاره کي بعض معقود عليه فوت شي. نو بالاتفاق د خيار عيب په وجه واپس کولې شي. نو دغه ډول به د خيار شرط په وجه هم واپس کولې شي. په خلاف د بيع، چي په بيع او اجاره کي توپير دي. او هغه داچه بيع کي پوره واپس کول ممکن دي. اجاره کي ممکن نه دي. په دې وجه بيع کي د کل واپسی شرط کړې شوه. اجاره کي شرط نکړې شوه.

## په عذرونو سره د اجاره فسخ کولو حکم



قَالَ: (وَتُفْسَخُ الْإِجَارَةُ بِالْأَعْذَارِ) عِنْدَنَا. او فسخ کولي به شي اجاره د عذرونو په وجه زموږ په نيز. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: امام شافعي رحمه الله فرماني. لَا تُفْسَخُ إِلَّا بِالْعَيْبِ؛ چي نه به شي فسخ کولي. مګر د عيب په وجه. لِأَنَّ الْمَنَافِعَ عِنْدَهُ بِمَنْزِلَةِ الْأَعْيَانِ ځکه چي منافع ددوی په نيز په منزله د اعيان دي. حَتَّى يَجُوزَ الْعَقْدُ عَلَيْهَا تردې چي په دې باندې عقد جائز دي. فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ. نودا د بيع مشابه شو.

**تشريح: څلورم صورت⊛** زموږ په نيز اجاره دعذر په وجه هم فسخ کولي شي. د آئمه ثلاثه او ابوثور رحمهم الله په نيز صرف د عيب په وجه فسخ کول جائز دي. ځکه چي ددوی په نيز منافع په م[illegible] د اعيان دي. تردې چي ددوی په نيز منافع باندې عقد واقع کيداې شي. او هغه د بيع مشابه شو. لکه څنګه چي مبيع د عيب په وجه نشي واپس کولي. دغه ډول منفعت هم بلا عيب نشي واپس کولي. د قاضي شريح او ابن ابي ليلي رحمهما الله په نيز خو بغير د عذر نه هم فسخ کولي شي. ځکه چي ددوی په نيز اجاره لازمي عقد نه دي.

وَلَنَا زموږ دليل دادې. أَنَّ الْمَنَافِعَ غَيْرُ مَقْبُوضَةٍ چي منافع مقبوض نه دي. وَهِيَ الْمَعْقُودُ عَلَيْهَا او هم دا معقود عليه دي. فَصَارَ الْعُذْرُ فِي الْإِجَارَةِ كَالْعَيْبِ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْبَيْعِ نو په اجاره کي عذر داسې شو لکه بيع کي د قبضه نه وړاندې عيب وي. فَتَنْفَسِخُ بِهِ، نو دعذر په وجه فسخ کولي شي. إِذِ الْمَعْنَى يَجْمَعُهُمَا ځکه چي سبب دواړو ته جامع دي. وَهُوَ عَجْزُ الْعَاقِدِ عَنِ الْمُضِيِّ فِي مُوجَبِهِ إِلَّا بِتَحَمُّلِ ضَرَرٍ زَائِدٍ لَمْ يُسْتَحَقَّ بِهِ، وَهَذَا هُوَ مَعْنَى الْعُذْرِ عِنْدَنَا او زموږ په نيز دعذر معنی هم داده.

**تشريح:** زموږ دليل دادې. چه ددې شي په ټولو نفعو باندې قبضه نشي کيدې حالانکه هم دا معقود عليه دي. نو اجاره کي عذر داسې شو. لکه په بيع کي د قبضه نه وړاندې عيب وي. نود عذر په وجه فسخ کولې شي. ځکه چي د عقد ماتولو دجواز چي کوم سبب دې. هغه په بيع او اجاره دواړو کي موجود دې. او هغه سبب دادې. چه عاقد د عقد د موجب موافق معامله نشي کولي. مګر په دې طريقه چي داسې زياتي ضرر اوچت کړي. چه دهغې استحقاق د عقد په ذريعه نه دې شوې. او زموږ په نيز د عذر هم دا معنی ده. که عاقد اجاره پاته اوساتي. نو ددې به داسې نقصان لازميږي. کوم چي په ده باندې عقد اجاره سره نه لازميږي.

**تنبيه⊛** شيخ ابن العز رحمه الله په دې مقام باندې دا اعتراض کړې دي. چه په عذرونو او د متعاقدينو په مرګ سره اجاره فسخ کيدل، يو داسې خبره ده. چه په دې نه څه دليل موجود دې. نه قول د صحابي، او نه اجماع. بلکه صرف د عيب په وجه د بيع په فسخ باندې قياس دې. خوصرف د موصوف دا اعتراض ډير زيات کمزورې دي. ځکه چي شرعی ادلۀ اربعۀ ځني قياس يو مستقل دليل دې. چه ددې تحقق د حکم شرعی د اثبات لپاره کافي دي. چه زموږ په دلائلو کي موجود دي.

(وَهُوَ كَمَنِ اسْتَأْجَرَ حَدَّادًا او ددې مثال دادې. چه يوکس جراح (د زخمونو علاج کونکې) په مزدورۍ باندې اونيولو. لِيَقْلَعَ ضِرْسَهُ لِوَجَعٍ بِهِ چي دده د درد والا د جامې غاښ اوباسي. فَسَكَنَ الْوَجَعُ بيا درد ختم شو. أَوِ اسْتَأْجَرَ طَبَّاخًا لِيَطْبُخَ لَهُ طَعَامَ الْوَلِيمَةِ يا ئي (بتيارۀ د وليمې د خوراك پخولو لپاره اجاره باندې واخستلو. فَاخْتَلَعَتْ مِنْهُ بيا ښځي خلع واخستله. تُفْسَخُ الْإِجَارَةُ) نو اجاره به فسخ کولې شي. لِأَنَّ فِي الْمُضِيِّ عَلَيْهِ إِلْزَامَ ضَرَرٍ زَائِدٍ ځکه چي اجاره پوره کاوه کي يو زياتي ضرر لازمول دي. لَمْ يُسْتَحَقَّ بِالْعَقْدِ چي ددې استحقاق د عقد په ذريعه نه وو شوې.

**تشريح:** ددې ځائې نه د فسخ د موجب عذرونو يو څو صورتونه ذکرکوي:
① يو سړی د جامې د دردناك غاښ اوخکلو لپاره يو ډاکټر اجرت باندې اونيولو. بيا د غاښ اوخکلو نه وړاندې درد ختم شو. نو اجاره به فسخ کولې شي. ځکه چي اجاره پاته ساتلو کي صحيح سلامت غاښ اوخکل لازميږي. چه دا مستاجر باندې د عقد اجاره په وجه لازم نه وو. ② يوکس يو باورچي (خانسامه) د

وليمې خوراك پخولو لپاره اجاره باندې اونيولو. بيا ښځې خلع واخستله. يا هغه مړه شوه. نو اجاره به فسخ كولې شي. ځكه كه اجاره فسخ نشي. بلكه پوره كول لازمي وي. نود مستاجر په ذمه به زياتي ضرر لازميږي چه ددې استحقاق د عقد اجاره په ذريعه نه وو شوې.

## د مال ضائع كيدو يا د فقير كيدو په عذر سره د اجاره فسخ كولو حكم

(وَكَذَا مَنْ اسْتَأْجَرَ دُكَّانًا فِي السُّوقِ دغه ډول كه يو كس دوكان په كرايه باندې واخستلو. په بازار كې. لِيَتَّجِرَ فِيهِ چې په دې كې تجارت اوكړي. فَذَهَبَ مَالُهُ، بيا دده مال لاړلو. وَكَذَا مَنْ أَجَرَ دُكَّانًا أَوْ دَارًا دغه ډول كله چې يو كس دوكان يا كور كرايه باندې وركړو. ثُمَّ أَفْلَسَ، بيا هغه فقير شو. وَلَزِمَتْهُ دُيُونٌ لَا يَقْدِرُ عَلَى قَضَائِهَا إِلَّا بِثَمَنِ مَا أَجَرَ و د هغه په ذمه دومره پور راغلې. چه هغه دې نشي اداكولې. خو په كرايه باندې د وركړې شئ په قيمت سره. فَسَخَ الْقَاضِي الْعَقْدَ نو فسخ دې كړي قاضي عقد، وَبَاعَهَا فِي الدُّيُونِ) او خرڅ دې كړي دا په پور كې.

**تشريح: دريم صورت** يو سړي په بازار كې يو دوكان په كرايه واخستلو. چې په دې كې تجارت اوكړي. بيا د هغه مال هلاك شو. نو هغه به لازماً اجاره فسخ كوي. دا خود مستاجر د عذر مثال دې. د موجر د عذر مثال دادې. چه ده خپل دوكان يا كور كرايه باندې وركړو. بيا فقير شو. او په ده باندې دومره پور راغلې. چه ددې اداكول ددې نه بغير ممكن نه دی. چه كوم شئ ده په كرايه باندې وركړې دې. هغه خرڅ كړي. او د هغې په قيمت نې ادا كړي. نو دا صحيح عذر دې. نو قاضي به اجاره فسخ كوي. او دده دوكان يا كور به قرضه كې خرڅه وي.

لِأَنَّ فِي الْجَرْيِ عَلَى مُوجِبِ الْعَقْدِ إِلْزَامَ ضَرَرٍ زَائِدٍ ځكه چې د عقد د مقتضاء مطابق چليدلو كې زياتي ضرر لازمول دي. لَمْ يُسْتَحَقَّ بِالْعَقْدِ چې ددې په عقد سره نه وو مستحق شوې. وَهُوَ الْحَبْسُ، او هغه قيد كيدل دي. لِأَنَّهُ قَدْ لَا يُصَدَّقُ عَلَى عَدَمِ مَالٍ آخَرَ. ځكه چې كله په نور مال نه كيدلو باندې دده تصديق نشي كيدلې.

**تشريح:** ځكه چې د عقد په مقتضاء باندې چليدلو كې دده په ذمه داسې زياتي ضرر لازميږي. د كوم چې دې عقد سره مستحق شوې نه وو. او هغه زياتي ضرر دادې. چه قرضه ادا نكړي. نو گرفتارولې به شي. او قيد كې به اچولې شي. په دې شرط چې نور مال وي. او كله كله په نور مال نه كيدلو باندې دده تصديق نه كيږي.

ثُمَّ قَوْلُهُ بيا دا وئيل. فَسَخَ الْقَاضِي الْعَقْدَ چې قاضي عقد فسخ كړي. إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يَفْتَقِرُ إِلَى قَضَاءِ الْقَاضِي فِي النَّقْضِ، اشاره ده دې خبرې اړخ ته. چه په عقد ماتولو كې د قاضي د قضاء اړتيا دې. وَهَكَذَا ذَكَرَ فِي الزِّيَادَاتِ فِي عُذْرِ الدَّيْنِ، او هم دغه ډول په زيادات كې عذر د پور په اړه كې ذكر كړې شوې دې. وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: او جامع صغير كې دی. وَكُلُّ مَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ عُذْرٌ چې هغه ټولې خبرې كومې چې موږ ذكر كړې. چه هغه عذرونه دی. فَإِنَّ الْإِجَارَةَ فِيهِ تُنْتَقَضُ، هغې كې به اجاره ماتيږي. وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَا يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى قَضَاءِ الْقَاضِي. دا په دې خبره دلالت كوي. چه په ماتولو كې د قاضي د قضاء اړتيا نشته.

**تشريح:** يعني ابو الحسين قدوري رحمه الله چې په مختصر كې كوم دا وئيلي دی. چه «فسخ القاضي العقد» دا دې خبرې اړخ ته اشاره ده. چه په عقد ماتولو كې د قاضي د فيصلې اړتيا دې. او د پور د عذر په اړه كې زيادات كې هم دغه ډول ذكر دی. او هم دې ته شمس الائمه سرخسي رحمه الله صحيح وئيلي دی. او جامع صغير كې دی. چه كومې خبرې موږ عذر بيان كړې دی. په هغه ټولو كې به اجاره ماتيږي. دا په دې خبره دلالت كوي. چه په اجاره فسخ كيدلو كې د قاضي د قضاء اړتيا نشته.

وَوَجْهُهُ أَنَّ هَذَا بِمَنْزِلَةِ الْعَيْبِ قَبْلَ الْقَبْضِ فِي الْمَبِيعِ عَلَى مَا مَرَّ او ددې وجه داده. چه دا په مبيع كې د قبضې نه وړاندې د عيب په درجه كې دې. لكه څنګه چې تير شو. فَيَنْفَرِدُ الْعَاقِدُ بِالْفَسْخِ. نو په فسخ كاوه كې به عاقد مستقل وي. وَوَجْهُ الْأَوَّلِ او د رومبي قول وجه داده. أَنَّهُ فَصْلٌ مُجْتَهَدٌ فِيهِ چې دا مجتهد فيه مسئله داده. فَلَا بُدَّ مِنْ



إِلْزَامِ الْقَاضِي، نود قاضي لازمول ضروري دی. وَمِنْهُمْ مَنْ وَفَّقَ فَقَالَ: او بعض مشائخو تطبيق وركړې دې. نو وئيلي ئې دی. إِذَا كَانَ الْعُذْرُ ظَاهِرًا كه عذر ښكاره وي. لَا يَحْتَاجُ إِلَى الْقَضَاءِ لِظُهُورِ الْعُذْرِ، نود قضاء اړتيا نشته. وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ظَاهِرٍ كَالدَّيْنِ او كه ښكاره نه وي. لكه قرضه، يَحْتَاجُ إِلَى الْقَضَاءِ لِظُهُورِ الْعُذْرِ، نو د عذر ښكاره كاوه لپاره د قضاء اړتيا دې.

**تشريح:** ددې وجه داده. چه اجاره كې دا عذرونه داسې دی. لكه په بيع كې د قبضې نه وړاندې عيب، چې مشتري ئې پخپله فسخ كولې شي. او د رومبي قول وجه داده. چه دا مسئله مجتهد فيه ده. لكه چې د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز اجاره نه فسخ كيږي. په دې وجه ضروري شوه. چه قاضي پخپل حكم سره اجاره فسخ كول لازم كړي. او بعض مشائخو په دې دواړو روايتونو كې داسې تعليق كړې دې. كه عذر بالكل ښكاره وي. نود قاضي د حكم اړتيا نشته. او كه ښكاره نه وي. لكه قرضه، نود عذر ښكاره كاوه لپاره به د قاضي د قضاء اړتيا وي. شيخ محبوبي او قاضي خان هم ددې تصحيح كړې ده. «و العذر الظاهر مثل استيجار الحداد لقلع الضرس او الطباخ بطبخ طعام الوليمة».

## د سفر ضرورت راپيښيدو په عذر سره د كرايه د څاروي اجاره فسخ كولو حكم

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً يو كس يو حيوان (څاروې) په كرايه باندې واخستلو. لِيُسَافِرَ عَلَيْهَا چې په دې باندې سفر اوكړي. ثُمَّ بَدَا لَهُ مِنَ السَّفَرِ بيا دده رائې بدله شوه. فَهُوَ عُذْرٌ) نو دا عذر دې. لِأَنَّهُ لَوْ مَضَى عَلَى مُوجِبِ الْعَقْدِ ځكه كه هغه په موجب د عقد باندې چليږي. يَلْزَمُهُ ضَرَرٌ زَائِدٌ، نو ده ته به زياتي ضرر لازم شي. لِأَنَّهُ رُبَّمَا يَذْهَبُ لِلْحَجِّ ځكه كيداې شي. چه هغه حج ته ځي. فَذَهَبَ وَقْتُهُ او ددې وخت تللې وي. أَوْ لِطَلَبِ غَرِيمِهِ فَحَضَرَ يا د پور دار په لټون كې ځي. خو هغه حاضر شو. أَوْ لِلتِّجَارَةِ فَافْتَقَرَ يا ئې تجارت لپاره تلل غوښتل. خو هغه فقير شو. (وَإِنْ بَدَا لِلْمُكَارِي او كه په كرايه باندې د تلونكي رائې بدله شوه. فَلَيْسَ ذَلِكَ بِعُذْرٍ) نو دا عذر نه دې. لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يَقْعُدَ ځكه چې هغه لپاره دا ممكن دی. چه پخپله كښيني (پاتې شي). وَيَبْعَثَ الدَّوَابَّ عَلَى يَدِ تِلْمِيذِهِ أَوْ أَجِيرِهِ او د خپل شاګرد يا نوكر په لاس حيوان (څاروې) اوليګي. (وَلَوْ مَرِضَ الْمُؤَاجِرُ) وكه موجر بيمار شو. فَقَعَدَ و كيناستلو. فَكَذَا الْجَوَابُ نو بيا هم ځواب هم دادې. عَلَى رِوَايَةِ الْأَصْلِ. په روايت د مبسوط باندې. وَرَوَى الْكَرْخِيُّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ عُذْرٌ او امام كرخي ذكر كړې دی. چه دا هم عذر دې. لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ ضَرَرٍ ځكه چې دا هم د ضرر نه خالي نه ده. فَيُدْفَعُ عَنْهُ عِنْدَ الضَّرُورَةِ دُونَ الْإِخْتِيَارِ، نو په وخت د اړتيا به دده نه دا ضرر لرې كولې شي. په حالت د اختيار به نشي (لرې) كولې.

**تشريح:** په جمهره او جمل وغيره كې دی. چه بدا (ن) بدوا، بداء: په معنى د ښكاره كيدلو دې. او، بدا لي في هذا الامر،، هغه وخت وئيلې شي. كله چې رومبئ رائې بدله شي. «فلان ذو بدوات» فلانې سړې مختلف رايو والا دې. يعني دده په رايو كې مضبوطي نشته.

**قوله:** ثم بدا له من السفر ددې مطلب دادې،، بداله صلاح خلاف ما قصده من السفر،، يعني مخكې چې د سفر كومه اراده وه. د هغې خلاف غوره ښكاره شوه. نود،، بدا،، فعل فاعل محذوف نه دې. بلكه په دلالت د محل د كلام فاعل مضمر دې. نو ددې اړخ ته د ضمير راګرځيدل صحيح دی. «كما في قولهم إن كان غداً فأتني إن كان ما نحن فيه غدا فأتني» د كتاب ددې عبارت مطلب او د مسئلې حكم ژباړې نه واضح دې.

## غلام په اجاره وركولو نه روسته د خرڅولو په عذر سره د اجاره فسخ كولو حكم

(وَمَنْ آجَرَ عَبْدَهُ يو كس خپل غلام اجاره باندې وركړو. ثُمَّ بَاعَهُ بيا ئې هغه خرڅ كړو. فَلَيْسَ بِعُذْرٍ) نو دا عذر نه دې. لِأَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ الضَّرَرُ بِالْمُضِيِّ عَلَى مُوجِبِ عَقْدِهِ، ځكه چې د عقد د مقتضاء موافق چليدلو كې ده ته هيڅ ضرر نه لازميږي. وَإِنَّمَا يَفُوتُهُ الِاسْتِرْبَاحُ بلكه بالفعل نفع اوچتول فوت كيږي. وَأَنَّهُ أَمْرٌ زَائِدٌ او دا يو زياتي امر دې.

**تشريح:** يو سړی خپل غلام اجاره باندې ورکړو، بيا ئې دا خرڅ کړو، نو دا عذر نه دې. بالاتفاق په دې سره اجاره نه فسخ کيږی. ځکه چې د عقد د مقتضاء موافق چليدلو کې ده ته هيڅ نه لاحق کيږی، بلکه صرف بالفعل نفع اخستل فوت کيږی. چه دا زياتی امر دې. که ددې په وجه هم اجاره ماته کړې شی. بيا خو هيڅ اجاره هم صحيح سلامت نه پاتې کيږی. نو د خلګو ضرورتونه به بيکاره پاتې شی.

**فائده:** بيا په ذکر شوې صورت کې د موجر خپل غلام خرڅول جائز دی او که نه؟ په دې کې د رواياتو د الفاظو اختلاف دې. شيخ شمس الائمه سرخسی رحمه الله په اصل يعنی د مبسوط د اجارات په شرح کې وئيلی دی. صحيح روايت دادې، چه بيع به د حق مستاجر ساقطيدلو پورې موقوف پاتې وی. او مستاجر دا بيع نشی ماتولې. د صدرشهيد ميلان هم دې اړخ ته دې. ترددې چې مفتی دې ددې په خواب کې داسې ليکی چه د مستاجر په حق کې دا بيع جائز نه ده.

﴿وَإِذَا اسْتَأْجَرَ الْخَيَّاطُ غُلَامًا﴾ يو درزی يو ماشوم اجرت باندې واخستلو. ﴿فَأَفْلَسَ﴾ بيا هغه مفلس شو. ﴿وَتَرَكَ الْعَمَلَ﴾ او هغه کار پريښولو. ﴿فَهُوَ الْعُذْرُ﴾ نو دا عذر دې. لِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ الضَّرَرُ بِالْمُضِيِّ عَلَى مُوجِبِ الْعَقْدِ لِفَوَاتِ مَقْصُودِهِ چونکه د عقد د موجب موافق چليدو سره ده ته ضرر لاحق کيږی. دده د مقصود فوت کيدلو په وجه. وَهُوَ رَأْسُ مَالِهِ، او هغه دده راس المال دې. وَتَأْوِيلُ الْمَسْأَلَةِ خَيَّاطٌ يَعْمَلُ لِنَفْسِهِ، او د مسئلې صورت دادې، چه د درزی نه هغه درزی مراد دې چه هغه خپل ځان لپاره کار کوی. أَمَّا الَّذِي يَخِيطُ بِأَجْرٍ باتې شو هغه درزی چې هغه اجرت باندې ګنډل کوی. فَرَأْسُ مَالِهِ الْخَيْطُ وَالْمِخْيَطُ وَالْمِقْرَاضُ نو د هغه راس المال تار، ستن، او غيچی (قينچی) ده. فَلَا يَتَحَقَّقُ الْإِفْلَاسُ فِيهِ او په دې کې تنګلاسی (غريبی) نه متحقق کيږی. ﴿وَإِنْ أَرَادَ تَرْكَ الْخِيَاطَةِ﴾ او که درزی د ګنډلو کار پريښولو ﴿وَأَنْ يَعْمَلَ فِي الصَّرْفِ﴾ او د زرګرئ کار کول ئې اوغوښتل. ﴿فَلَيْسَ بِعُذْرٍ﴾ نو دا عذر نه دې. لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُقْعِدَ الْغُلَامَ لِلْخِيَاطَةِ فِي نَاحِيَةٍ، ځکه دده لپاره دا ممکن ده. چه ماشوم يو ګوټ کې ګنډلو لپاره کينوی. وَهُوَ يَعْمَلُ فِي الصَّرْفِ فِي نَاحِيَةٍ، او په بل ګوټ پخپله د صرافی کار کوی. وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا اسْتَأْجَرَ دُكَّانًا لِلْخِيَاطَةِ او دا ددې خلاف دی. کله چې ده ګنډلو لپاره دوکان کرايه باندې واخستلو. فَأَرَادَ أَنْ يَتْرُكَهَا بيا ئې د ګنډلو کار پريښولو. وَيَشْتَغِلَ بِعَمَلٍ آخَرَ او بل کار کول ئې اوغوښتل. حَيْثُ جَعَلَهُ عُذْرًا ذَكَرَهُ فِي الْأَصْلِ، چې دا امام محمد رحمه الله عذر ګرځولې دې. لِأَنَّ الْوَاحِدَ لَا يُمْكِنُهُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْعَمَلَيْنِ، ځکه چې يو سړی ته په دوې (دوه) کارونو کې جمع کول ناممکن دی. أَمَّا هَاهُنَا الْعَامِلُ شَخْصَانِ او دلته کې کارکونکی دوې (دوه) دی. فَأَمْكَنَهُمَا نو هريو له به خپل کار کول ممکن وی.

**تشريح:** يو درزی يو ماشوم د کال په خلوېښت روپئ اجرت باندې مقرر کړو. بيا هغه مفلس شو. او هغه کار پريښولو، نو دا عذر دې. اجاره به فسخ کيږی. ځکه چې د عقد د مقتضاء موافق چليدلو کې ده ته ضرر لاحق کيږی. ځکه چې دده کوم مقصد وو. هغه فوت شو. يعنی راس المال لاړلو.

علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. ددې مسئلې صورت دادې. چه د درزی نه مراد داسې درزی دې. چه هغه پخپله کپړې ګنډی. او خرڅوی. او که هغه د خلګو کپړې په اجرت باندې ګنډی. نو د هغه راس المال خو تار، ستن، او غيچی (قينچی) ده. چه په دې کې د غريبئ ثبوت نشی کيدې. او دا هم وئيلی شوی دی. چه د تاويل اړتيا نشته. ځکه چې کله کله اجرت باندې کارکونکې هم عاجز کيږی. په دې طريقه چې خلګو ته دده خيانت معلوم شی. او هغوی دده سره معامله کاوه نه خان ساتی.

### خدمت لپاره د غلام اخستلو نه روسته د سفر په عذر سره د اجاره فسخ کولو حکم

﴿وَمَنِ اسْتَأْجَرَ غُلَامًا يَخْدُمُهُ فِي الْمِصْرِ﴾ يو کس يو غلام اجاره باندې واخستلو. چه هغه دده خدمت اوکړی. په ښار کې ﴿ثُمَّ سَافَرَ﴾ بيا هغه سفر اختيار کړو. ﴿فَهُوَ عُذْرٌ﴾ نو دا عذر دې. لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ إِلْزَامِ ضَرَرٍ زَائِدٍ، ځکه چې دا د زياتی



ضرر لازميدلو نه خالی نه دې. لِأَنَّ خِدْمَةَ السَّفَرِ أَشَقُّ، ځکه چې د سفر خدمت زيات مشکل وی. وَفِي الْمَنْعِ مِنَ السَّفَرِ ضَرَرٌ، او د سفر نه په منع کاوه کې نقصان دې. وَكُلُّ ذَلِكَ لَمْ يُسْتَحَقَّ بِالْعَقْدِ، او په دې کې يو امر هم د عقد په ذريعه نه مستحق شوی نه وو. فَيَكُونُ عُذْرًا نو دا به عذر وی. ﴿وَكَذَا إِذَا أَطْلَقَ﴾ دغه ډول که ده خدمت مطلق اوساتلو. لِمَا مَرَّ أَنَّهُ يَتَقَيَّدُ بِالْحَضَرِ، ځکه وړاندې تير شوی دی. چه دا خدمت حضر (اقامت) سره مقيد وی. بِخِلَافِ مَا إِذَا آجَرَ عَقَارًا په خلاف ددې کله ئې چې کور کرايه باندې ورکړو. ثُمَّ سَافَرَ بيا ئې سفر اختيار کړو. لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ ځکه چې دې کې هيڅ ضرر نشته. إِذِ الْمُسْتَأْجِرُ يُمْكِنُهُ اسْتِيفَاءُ الْمَنْفَعَةِ مِنَ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ بَعْدَ غَيْبَتِهِ، ځکه چې مستاجر ته د معقود عليه نه نفع اخستل ممکن دی. د موجر د غائب کيدلو نه روسته هم. حَتَّى لَوْ أَرَادَ الْمُسْتَأْجِرُ السَّفَرَ تردې که مستاجر د سفر اراده اوکړی. فَهُوَ عُذْرٌ نو دا عذر دې. لِمَا فِيهِ مِنَ الْمَنْعِ مِنَ السَّفَرِ ځکه چې دې کې د سفر نه منع کيدل دی. أَوْ إِلْزَامِ الْأَجْرِ بِدُونِ السُّكْنَى يا د اوسيدلو نه بغير اجرت لازمول دی. وَذَلِكَ ضَرَرٌ او دا ضرر دې.

**تشريح:** يو سړی يو غلام ددې لپاره اجاره باندې واخستلو. چه دده څخه به ښار کې خدمت اخلی. بيا ده سفر اختيار کړو. نو دا د اجاره فسخ کاوه لپاره عذر دې. ځکه چې اجاره پاتې ساتل د زياتی ضرر نه خالی نه ده. ځکه چې د سفر په خدمت کې مشقت زيات وی. دلته د سفر نه منع کاوه کې ضرر دې. او زياتی مشقت يا د سفر نه منع کول، عقد اجاره سره نه دی مستحق شوی. نو دا به اجاره فسخ کاوه لپاره عذر وی. دغه ډول که ده خدمت مطلق اوساتلو. او داسې ئې اووئيل. ﴿إستاجرت منك هذا العبد للخدمة﴾ او د حضر (اقامت) يا سفر قيد ئې نه دې لګولې. بيا به هم په دې صورت کې اجاره ماتيږی. ځکه دا خبره وړاندې تيره شوې ده. چه مطلق اجاره د حضرت په خدمت سره مقيد وی. يعنی د شرط کاوه نه بغير دا په سفر کې نشی بوتللې.

## مسائل منثورة

ژباړه: يعنی متفرقې مسئلې

### په پاته مانده فصل سوزولو سره د ګاونډی د فصل د نقصان مسئله

قَالَ: ﴿وَمَنِ اسْتَأْجَرَ أَرْضًا أَوِ اسْتَعَارَهَا﴾ يو کس يوه مځکه په اجاره يا عاريت باندې واخستله. ﴿فَأَحْرَقَ الْحَصَائِدَ﴾ او فصل پاته مانده ويخونه ئې اوسوزول، ﴿فَاحْتَرَقَ شَيْءٌ مِنْ أَرْضٍ أُخْرَى﴾ نو په دې سره د بل په مځکه کې څه شی اوسوزيدلو. ﴿فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ﴾ نو په ده باندې تاوان نشته. لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِي هَذَا التَّسْبِيبِ ځکه چې په دې سبب پوره کاوه کې دې متعدی نه دې. فَأَشْبَهَ حَافِرَ الْبِئْرِ فِي دَارِ نَفْسِهِ. نو پخپل کور کې د کوهی کنستونکی مشابه شو.

**حل اللغة:** **منثور:** خورې ورې، شيندلې شوې، جلا جلا ، **احرق احراقاً:** سوزول، **حصائد:** د حصيدة جمع ده. د فصل هغه لاندينۍ برخه ده. کومه چې په لور (يا رمبی) سره د کټ کاوه نه روسته پاتې شی. **متعد:** د حد نه تيريدونکې، **حافر البئر:** څاه کنستونکې، **رياح:** د ريح جمع ده، هواء ، **هادئة:** بنده شوې، ودريدلې ، ساکنه، **موقد:** روښانه کونکې، بلونکې. **خياط:** درزی ، **صباغ:** رنګريز، **حانوت:** دوکان، **يطرح** (ف) **طرحاً:** اچول، کينول، **وجاهة:** مرتبه، عزت او حرمت، **حذاقة:** مهارت،

**تشريح:** يو کس د اجارة يا عاريت په مځکه کې د فصل ټوټې (پاته مانده ويخونه) اوسوزول. او ددې په وجه د بل په مځکه کې بزغلې وغيره څه شئ اوسوزيدلو. نو د ويخونو سوزونکې به ضامن نه وی. ځکه چې کوم فعل ئې ذکر کړې دې. د هغې د کاوه سبب او طريقه هم دغه ده. او کوم شئ چې ضمان وی. د هغې اعتماد په سبب کې قصداً کاوه باندې کيږی. او دلته کې په قصد سره نه دې شوې. نو دا داسې شوه. لکه چې يو کس پخپل ملك کې څاه اوکنی. او څوك په دې کې پريوځی. او هلاك شی. چه په کوهی کنستونکی باندې تاوان نه وی. ځکه چې دا کار ده په قصد سره نه دې کړې. او که يو کس پخپل ملك کې غشې اولی. او په هغې څوك سړې اولګی. نو هغه به ضامن وی. او د ويخونو سوزونکې به ځکه ضامن نه وی. چه هغه مباشر دې. نو دده

فعل به تعدي باندې موقوف نه وي. او وجه په اصل کې داده. چه مباشرت پخپله يو علت دې. نو ددې حکم به د عذر په وجه نه باطليږي. پاتې شو سبب، نودا پخپله علت نه دې. نو ددې علت سره د لاحق کاوه لپاره د صفت تعدي کيدل ضروري دي. حالانکه کوم شئ چې د فصل کټ کاوه نه پاتې شي. د هغې سوزول جائز دي. تعدي نه ده. «فلا يضاف التلف إليه».

بيا شمس الائمه سرخسي رحمه الله فرمائي. چه مذکوره حکم يعني عدم ضمان هغه وخت دې. کله چې د سوزولو په وخت تيزه هوا پيل نه وي. ګني په سوزونکي به تاوان وي. خکه هغه پوهيږي. چه اور به په يو خائې نه ايساريږي.

وَقِيلَ او ونيلي شوي دي. هَذَا إِذَا كَانَتِ الرِّيَاحُ هَادِئَةً چې دا حکم هغه وخت دې. کله چې هواء ودريدلي وي. ثُمَّ تَغَيَّرَتْ. روسته بدله شي. أَمَّا إِذَا كَانَتْ مُضْطَرِبَةً او که هواء ګډه وډه چليږي. يَضْمَنُ انو دې به ضامن وي. لِأَنَّ مُوقِدَ النَّارِ يَعْلَمُ أَنَّهَا لَا تَسْتَقِرُّ فِي أَرْضِهِ. خکه اور بلونکي پوهيږي. چه اور به صرف دده زمکې پورې قائم نه پاتې کيږي.

تشريح: شيخ سغناقي رحمه الله فرمائي. چه لفظ هادنة په معنى د ساکنة نون سره دې. چه دا د هدن(ض) هدونا خنې دې په معنى د سکن سره، هم ددې نه هدنة او هدون دی. صلح او سکون ته ونيلې شي. په بعضو نسخو کې هاونة په همزې سره دې. چه دا د هداء خنې دې. په معنى د حرکت او آواز وغيره کې سکون کيدل. قال الشاعر-

ان السباع لتهدى فى قرا مسيها ﴿ و الناس ليس لها د شرهم أبداً

قَالَ: (وَإِذَا أَقْعَدَ الْخَيَّاطُ که کينولو درزي أَوِ الصَّبَّاغُ فِي حَانُوتِهِ مَنْ يَطْرَحُ عَلَيْهِ الْعَمَلَ بِالنِّصْفِ يا کپړې رنګ کونکي پخپل دوکان کې هغه سړې کوم چې ده ته په نيمه باندې کار ورکوي. فَهُوَ جَائِزٌ) نو دا جائز دی. لِأَنَّ هَذِهِ شَرِكَةُ الْوُجُوهِ فِي الْحَقِيقَةِ. خکه چې دا په حقيقت کې د وجوه شرکت دې. فَهَذَا بِوَجَاهَتِهِ يَقْبَلُ نو دې پخپلې مرتبې سره کار قبلوي. وَهَذَا بِحَذَاقَتِهِ يَعْمَلُ او هغه پخپل مهارت سره کار کوي. فَيَنْتَظِمُ بِذَلِكَ الْمَصْلَحَةُ په دې طريقه سره کاوه کې به کار په مناسب طريقه وي. فَلَا تَضُرُّهُ الْجَهَالَةُ فِيمَا يَحْصُلُ نو کوم څه چې حاصليږي. هغې مجهول کيدا په هيڅ نقصان ده نه وي..

تشريح: يو درزي يا کپړې رنګ کونکي يو سړې پخپل دوکان کې کينولو. چه هغه د خلګو نه د ګنډلو او رنګ کاوه کار اخلي او دوکاندار ته ئې ورکوي. او معامله نيم په نيمه اجرت باندې فيصله شوه. نود قياس په رو سره اګرچه دا ناجائز دی. او امام شافعي رحمه الله د عدم جواز قائل دې. خکه چې کوم شئ دده په عمل سره حاصليږي. هغه مجهول دې. اود مالک دوکان راس المال صرف منفعت دې. چه دا د شرکت راس المال نشي کيدې. خو استحساناً صحيح دې. او وجه داده. چه دا په حقيقت کې اجاره نه ده. بلکه شرکت د وجوهو دی. اودا جائز دې. نو دا سړې کوم ئې چې کينولې دې پخپلې مرتبې سره به د خلګو نه کار اخلي. او درزي يا رنګريز به پخپل مهارت سره دا کار پوره کوي. نو کوم څه چې حاصليږي. د هغې مجهول کيدل هيڅ مضر نه دي. امام طحاوي رحمه الله فرمائي. چه زما په نيز د استحسان په نسبت قياس اولى دې.

تنبيه: علامه مرغيناني رحمه الله مذکوره صورت ته شرکت د وجوه ونيلي دی. او شارحينو د استحسان وجه دا بيان کړې ده. چه دا شرکت صنائع (په کاريګرئ کې شرکت) دې. چه دې ته شرکت تقبل هم وائي. او د موصوف قول «فهذا بوجاهته» د شرکت صنائع زيات مناسب دې.

**د کيجاوې او دوې (دوه) سړو سوارولو لپاره د اوښ په کرايه د اخستلو حکم**

قَالَ: (وَمَنِ اسْتَأْجَرَ جَمَلًا يو کس يو اوښ اجاره باندې واخستلو. لِيَحْمِلَ عَلَيْهِ مَحْمِلًا وَرَاكِبَيْنِ إِلَى مَكَّةَ چې په دې باندې يوه کيجاوه او دوې (دوه) سوارلئ کينوي. او مکې پورې لاړ شي. جَازَ) نودا جائز دی. وَلَهُ الْمَحْمِلُ الْمُعْتَادُ



او مستاجر ته به د عامې کيجاوې ايخودلو اختيار وي. وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او په قياس کې جائز نه دی. وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ لِلْجَهَالَةِ او هم دا د امام شافعي رحمه الله قول دې. د جهالت په وجه وَقَدْ يُفْضِي ذَلِكَ إِلَى الْمُنَازَعَةِ. چې دا کله کله جګړې پورې رسوي. وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّ الْمَقْصُودَ هُوَ الرَّاكِبُ وَهُوَ مَعْلُومٌ چې اصل مقصود خو سوارلئ ده. چه دا معلومه ده. وَالْمَحْمِلُ تَابِعٌ او کيجاوه تابع ده. وَمَا فِيهِ مِنَ الْجَهَالَةِ يَرْتَفِعُ بِالصَّرْفِ الْمُتَعَارَفِ او په دې کې چې کوم جهالت دې. هغه متعارف اړخ ته ګرځولو سره لرې کيږي. فَلَا يُفْضِي ذَلِكَ إِلَى الْمُنَازَعَةِ نو جګړې پورې به نوبت نه رسيږي. وَكَذَا إِذَا لَمْ يَرَ الْوِطَاءَ وَالدُّثُرَ. دغه ډول که بستره اود اغوستلو کپړې ئې نه وي خودلې، (نودا به هم متعارف اړخ ته ګرځولې شي). قَالَ: (وَإِنْ شَاهَدَ الْجَمَّالُ الْحِمْلَ او که د اوښ والا کيجاوه اوکتله. فَهُوَ أَجْوَدُ) نودا زياته بهتره ده. لِأَنَّهُ أَنْفَى لِلْجَهَالَةِ وَأَقْرَبُ إِلَى تَحَقُّقِ الرِّضَا. خکه چې دا جهالت زيات لرې کونکې او رضامندئ ته نژدې دې.

تشريح: يو کس يو اوښ مکې پورې د کيجاوې بار کاوه اود دوې (دوه) سړو سوارولو لپاره اجرت باندې واخستلو. نودا د قياس په رو سره جائز نه دی. امام شافعي او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی. خکه چې د اوګدوالي، پلنوالي، درنوالي او سپکوالي هر اعتبار سره معقود عليه مجهول ده. او دا داسې جهالت دې. چه دا بعض وختونو کې جګړې پورې رسوي. خو استحساناً جائز دی. او وجه د استحسان داده. چه اصل مقصود خو سوارلئ ده. او هغه معلوم ده. يعنى د خلګو بوج تقريباً برابر وي. پاتې شوه کيجاوه نو هغه تابع ده. او ددې په اوګدوالي او پلن والي وغيره کې جهالت دې. نو دا په عامو کيجاوو باندې محمول کاوه سره لرې کيداې شي. نو جګړې ته به نوبت نه رسيږي. دغه ډول که بستره او د اغوستلو پټو (څادر) وغيره ئې نه وي خودلي. بيا هم اجاره جائز ده. او که اوښ والا دا شيان اوګوري. نو نوره هم بهتره ده.

قَالَ: (وَإِنِ اسْتَأْجَرَ بَعِيرًا لِيَحْمِلَ عَلَيْهِ مِقْدَارًا مِنَ الزَّادِ که يو اوښ ئې د لارې د خوراک څکاک د سامان يو مقدار لپاره اجاره باندې واخستلو. فَأَكَلَ مِنْهُ فِي الطَّرِيقِ بيا ئې لاره کې ددې مقدار نه څه اوخوړل. جَازَ لَهُ أَنْ يَرُدَّ عِوَضَ مَا أَكَلَ) نو خومره ئې چې خوړلي دی. هم په هغه اندازه زياتول جائز دی. لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِ حَمْلًا مُسَمًّى فِي جَمِيعِ الطَّرِيقِ خکه چې هغه په پوره لاره کې د بيان شوي بوج بار کاوه مستحق دې. فَلَهُ أَنْ يَسْتَوْفِيَهُ نو دې پوره حق حاصلولې شي. (وَكَذَا غَيْرُ الزَّادِ مِنَ الْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ) دغه ډول که د لارې د خوراک څکاک سامان نه علاوه بل څه کيلي يا وزني شئ وي. (نو بيا هم دا حکم دې)

تشريح: زيد د توښې (د لارې د خوراک څکاک د څيزونو) يو معين مقدار اوچتولو لپاره يو اوښ اجرت باندې واخستلو. بيا ئې په لاره کې څه توښه اوخوړله. نو دومره توښه نوره زياتولې شي. خکه چې هغه په پوره لاره کې د معين مقدار اوچتولو حقدار دې. امام شافعي رحمه الله او په يو قول کې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی. ددوی دوهم قول دادې. چه د عرف اعتبار به کولې شي. نو که ددې رواج وي. جائز به وي. ګني جائز به نه وي. امام مالک رحمه الله هم ددې قائل دې. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د توښې نه علاوه بل څه کيلي يا وزني شئ وي. نو هغې کې هم دا حکم دې.

وَرَدُّ الزَّادِ مُعْتَادٌ عِنْدَ الْبَعْضِ كَرَدِّ الْمَاءِ او د لارې د خوراک څکاک سامان واپس (زياتي) کاوه عام عادت دې. د بعضو په نيز، د اوبو واپس کاوه پشان. فَلَا مَانِعَ مِنَ الْعَمَلِ بِالْإِطْلَاقِ نو اطلاق باندې عمل کاوه نه هيڅ شئ مانع نشته.

سوال: دا د يو سوال خواب دې. سوال دادې. چه مسافر خلک د توښې نه کوم څه اوخوري. د هغې په خائې نور نه اچوي. بيا د شرط کاوه نه بغير به دا څنګه جائز وي؟

جواب: حاصل دخواب دادې. چه لکه څنګه مسافروکې د اوبو مقدار د بار بار پوره کاوه عام عادت

دي. دغه ډول د بعضو خلکو په نيز د ټوبني د کمي پوره کاوه هم عادت دي. نو دلته کي عرف مشترك شو. چه دا د مقيد کاوه صلاحيت نه لري. نود شرط نه بغير په اطلاق باندي دعمل كاوه نه هيڅ مانع نشته. البته كه دا شرط وي. چه کمي به نه پوره کوي. نود شرط د وجوب په وجه به نشي پوره کولي. اوکه دا شرط وي. چه کمي به پوره کولي شي. نو بالاتفاق پوره کولي شي.

## (كِتَابُ الْمُكَاتَبِ)

ژباړه: (دا) كتاب د مكاتب جوړولو (په بيان کي) دي.

تشريح: په قول د صاحب د نهايه رحمه الله دعقد اجاره نه روسته د عقد كتابت راوړلو مناسبت دادي. چه په دي کي هر يو داسي عقد دي. چه په دي سره د غير مال په مقابله کي مال په داسي طريقه حاصلولي شي. چه په هغي کي عوض ذکر كاوه سره اصالةً د ايجاب او قبول حاجت هم وي. او علامه اتقاني رحمه الله صاحب دغاية البيان چي دا ليکلي دي. چه كتابت د عتاق نه روسته راوړل پکار وو. ځکه چي دکتابت مال ولاء دي. اود ولاء دمال احکام د عتق ځني دي. په دي وجه حاکم شهيد په کافي کي كتاب المكاتب او كتاب الولاء د كتاب العتاق نه روسته ذکر کړي دي. دا مناسب نه دي. ځکه چي عتاق کي د غلام ذات د خپل ملك نه د عوض نه بغير اوښکلي کيږي. او په كتابت کي دا خبره نشته. «لأنه نسبته الذاتيات أولى من نسبته العرضيات» پاتي شو د صاحب د کافي رحمه الله ولاء ذکر کول، نو هغه عتاق سره د ولاء مناسبت بيانولو لپاره دي. عتاق سره د مكاتبت مناسبت بيانولو لپاره نه دي.

**د مكاتب لغوي تعريف**۞ لفظ د مكاتب د كاتبه مكاتبة نه اسم مفعول دي. په دي معنى چي د مال معين ادا كاوه په شرط آزادول. او دا په اصل کي د كتب (ن) كتابةً ځني دي. په معنى د جمع كاوه سره. لکه چي د لښکر يو مجتمع ډلي ته کتيبه واني او هم ددي نه كتاب دي. چه دا د بابونو او فصلونو جامع وي. «و منه يقال كتب النعل و القربة» پيزار يا مشك ني په بلي تسمي سره اوګنډلو.

**شرعي او اصطلاحي تعريف**۞ په كافي او كفايه وغيره کي ددي شرعي او اصطلاحي تعريف داسي شوي دي. «الكتابة تحرير يدًا في الحال و رقبةً عند اداء المال» غلام د تصرف په لحاظ سره بالفعل او د رقبة په اعتبار سره د بدل كتابت ادا كاوه نه روسته آزادولو ته كتابت واني. يعني د عقد كتابت نه روسته غلام د تصرف اعتبار سره د بدل كتابت ادا كاوه نه روسته غلام آزاديږي. ګويا قبضه في الوقت حاصليږي. او ملك رقبه د انجام په اعتبار سره حاصليږي.

**فائده**۞ علامه دميري رحمه الله په شرح منهاج کي ليکلي دي. چه په ذکرشوي معنى کي كتابت يو اسلامي لفظ دي. چه دا په زمانه د جاهليت کي معروف (او مشهور) نه وو. د بعضو په قول د ټولو نه وړاندي چي کوم سړي مكاتب کړي شو. هغه د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه غلام ابو اميه وو.

### د مكاتب كولو احكام

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَ الْمَوْلَى عَبْدَهُ أَوْ أَمَتَهُ عَلَى مَالٍ شَرَطَهُ عَلَيْهِ كله ني چي مكاتب کړو. خپل غلام يا وينځه د داسي مال په عوض چي هغه ني په ده شرط کړي دي. وَقَبِلَ الْعَبْدُ او غلام دا قبول کړو. ذَلِكَ صَارَ مُكَاتَبًا) نو هغه مكاتب شو.

تشريح: علامه عيني رحمه الله فرماني. چه ابو الحسين قدوري رحمه الله لفظ د كاتب د باب مفاعلت نه استعمال کړي دي. چه دا د دوو په منځ کي د اشتراك تقاضه کوي. ځکه چي آقا د خپل اړخه عقد نامه ليکي. او غلام قسطونه اداكوي. په دي لحاظ سره اصل فعل کي دواړه مشترك دي. نو آقا مكاتِب بالكسر دي. او غلام مكاتَب بالفتح دي.

### د مكاتب جوړولو شرعي حيثيت



أَمَّا الْجَوَازُ بِهِ حال جائز كيدل، فَلِقَوْلِهِ تَعَالَى {فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا} نو هغه د الله تعالى د قول په وجه دي. چه،، ته دوی ته اوليکه. كه تاته معلومه شي په دوی کي څه نيکي ،، (النور: ۳۳)

تشريح: دعقد كتابت د جواز دليل د الله تعالى ارشاد دي. فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا مطلب دادي. كه د يو کس غلام يا وينځه اوواني. چه زه په دومره موده کي دومره مال ستا لپاره اوګټم. نو ته به ما آزاده وي. نو مالك له پکار دي. چه قبول ني کړي. او اوليکي. کله چي هغه ته پته اولګي چه واقعي ددي غلام يا وينځي به حق کي به آزادي غوره وي. د غلامي د قيد نه خلاصيدلو نه روسته به غلاګاني، بدکاري، او قسم قسم بدمعاشياني نه کوي.

سعيد بن منصور د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روايت کړي دي. «أن النبي ﷺ قال إذا كان لأحد اكن مكاتب فملك ما يؤدي فلتحتجب منه و فيه أحاديث كثيرة سواه» او د كتابت په مشروعيت باندي د امت اجماع ده.

وَهَذَا لَيْسَ أَمْرَ إِيجَابٍ اودا حكم وجوبي نه دي.

تشريح: په ذکر شوي آيت کي د ﴿فَكَاتِبُوهُمْ﴾ امر وجوب لپاره وي. او که د غيروجوب لپاره وي. په دواړو صورتونو کي د عقد كتابت په مشروعيت باندي دلالت موجود دي. خود علامه مرغيناني رحمه الله مقصد چونکه دا خبره بيانول دي. چه عقد كتابت واجب امر دي. او که مندوب؟ په دي وجه دي اړخ ته راغي. فرماني. چه آيت کي د ﴿فَكَاتِبُوهُمْ﴾ امر په اجماع د فقهاؤ، حسن، شعبي، سفيان ثوري، امام مالك، او د امام شافعي رحمهم الله وغيره په نيز حكم ايجابي نه دي. بلکه مستحب حكم دي.

بِإِجْمَاعٍ بَيْنَ الْفُقَهَاءِ، وَإِنَّمَا هُوَ أَمْرُ نَدْبٍ په اجماع د فقهاؤ سره. بلکه دا حكم مستحب دي.

تشريح: تاج الشريعه صاحب دمعراج او صاحب د كفايه رحمهما الله وغيره وئيلي دي. چه د فقهاؤ د اجماع د قيد په ذريعه د داؤد ظاهري اصفهاني او دده د متبعينو عمرو بن دينار ضحاك، اسحاق، عطاء، او امام احمد رحمهم الله وغيره د قول نه احتراز دي. چه مذکوره امر ايجابي دي. تردي که يو غلام د خپل آقا نه د مكاتب جوړيدلو درخواست اوکړي. او آقا په دي کي خير اوګنړي. نو دده مكاتب كول ضروري دي.

**اشكال**۞ په دي باندي اشكال کيږي. چه صاحب دکشاف د ذکرشوي آيت په تفسير کي وئيلي دي. «و هذا الأمر للندب عند عامة العلماء و عن الحسن ليس ذاك بعزم ان شاء كاتب و إن شاء لم يكاتب و عن عمر رضي الله عنه هي عزمة من عزمات الله و عن ابن سيرين مثله و هو مذهب داؤد» . نو حضرت عمر رضي الله عنه چي دا په فقه او روايت کي د مشهور او جليل القدر صحابو رضي الله عنهم ځني دي. او حضرت ابن سيرين رحمه الله کوم چي په خاصو تابعينو او اعلى درجي فقهاؤ کي دي. هرکله چي ددوی په نيز مذکوره امر د وجوب لپاره دي. نو د فقهاؤ د اجماع دعوه څنګه صحيح کيداي شي؟

**جواب**۞ دادي. چه د کشاف ذکر شوي مضمون صرف په دي دلالت کوي. چه ددي امر د وجوب لپاره كيدل ددي حضراتو نه نقل دي. دا نه چي ددوی مقرر مذهب دادي. چه كتابت واجب دي. حالانکه د علامه مرغيناني رحمه الله كلام په دي مبني دي. کوم چي د فقهاؤ مقرر مذهب دي.

هُوَ الصَّحِيحُ. هم دا صحيح ده. وَفِي الْحَمْلِ عَلَى الْإِبَاحَةِ إِلْغَاءُ الشَّرْطِ نو په اباحت باندي محمول کاوه کي شرط لغو كول دي. إِذْ هُوَ مُبَاحٌ بِدُونِهِ، ځکه چي كتابت خو ددي نه بغير هم جائز دي. أَمَّا النَّدْبِيَّةُ مُعَلَّقَةٌ بِهِ، پاتي شو استحباب، نودا شرط سره معلق دي.

تشريح: په دي وئيلو سره زموږ د بعض مشائخو ددي قول نه احتراز دي. چه مذکوره امر د جواز لپاره دي. د استحباب لپاره نه دي. لکه څنګه چي په آيت ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللَّهِ وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ کي دي. وجه د احتراز داده. چه په جواز باندي حمل کاوه کي د شرط إِنْ

عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا ﴾ لغو كيدل لازميږي.يعنى دا شرط بې فائده كيږي.( حالانه د الله تعالى كلام د دې نه منزه ( او پاك) دې).څكه چې كتابت خو ددې شرط نه بغير هم جائز دى.پاتې شو ددې مستحب كيدل.( چې دا د مباح نه زيات دى ) نودا دې شرط سره متعلق دې.نو په مستحب كيدلو كې د شرط فائده ده.نو هم په دې به محمول كولې شي.

وَالْمُرَادُ بِالْخَيْرِ الْمَذْكُورِ عَلَى مَا قِيلَ او د ذكر شوى خير نه مراد لكه چې ونيلى شوى دى.دادې. أَنْ لَا يَضُرَّ بِالْمُسْلِمِينَ بَعْدَ الْعِتْقِ، چې غلام د آزادئ نه روسته مسلمانانو ته نقصان اونه رسوى. فَإِنْ كَانَ يَضُرُّ بِهِمْ كه هغه ددوى لپاره نقصان ده وى. فَالْأَفْضَلُ أَنْ لَا يُكَاتِبَهُ وَإِنْ كَانَ يَصِحُّ لَوْ فَعَلَهُ. نو غوره داده.چه دا مكاتب نكړى.اګرچه صحيح كيږي.كه وې كړى.

تشريح: په ذكر شوى آيت كې لفظ د،، خير،، راغلې دې.ددې تفسير د حضرت ابن عباس، ابن عمر رضي الله عنه اود زيد بن اسلم او حضرت عطاء نه كاريګرى او د اداء ګاوه قوت يعنى كسب ( او مزدورى )،او د سفيان ثورى ، او حسن بصرى رحمهما الله نه امانت او دين،د مجاهد ، طاؤس، ابوصالح او ابراهيم نخعى رحمهم الله نه مال او نيكى ، صدق او وفا، امانت او اداء منقول ده.علامه مرغينانى رحمه الله فرمانى.چه د بعضو په قول خير نه مراد دادې.چه دا غلام د آزاديدلو نه روسته مسلمانانو ته ضرر او نه رسوى.او بنكاره ده.كه هغه امين، ديندارة او مزدورى كونكې نه وى.نو هغه به د مسلمانانو په حق كې نقصان ده وى.نو په دې صورت كې افضل دادى.چه دې مكاتب نكړى.څوكه مكاتب ئې كړو.نو بلاكراهته به جائز وى.امام مالك او امام شافعى رحمهما الله هم ددې قائل دى.البته د امام اسحاق، ابو الحسن بن القطان شافعى رحمهما الله په نيز مكروه دى.

وَأَمَّا اشْتِرَاطُ قَبُولِ الْعَبْدِ پاتې شو د غلام د قبلولو شرط كيدل، فَلِأَنَّهُ مَالٌ يَلْزَمُهُ نو ددې لپاره چې هغه مال دې.چه په ده به لازم وى. فَلَا بُدَّ مِنَ الْتِزَامِهِ نو ددې التزام ضرورى دې.

تشريح: د غلام د قبلولو شرط ددې لپاره دې.چه دكتابت په وجه به دده په ذمه مال نه لازميږي.نودا ضرورى ده.چه هغه پخپله ذمه مال لازمول قبول كړى.آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دى.

### د مكاتب آزادي په بدل كتابت اداكولو سره مكاتب آزاديږي

وَلَا يَعْتِقُ إِلَّا بِأَدَاءِ كُلِّ الْبَدَلِ او نه به آزاديږي.مګر د پوره بدل كتابت ادا كاوه نه پس.

تشريح: زمونږ په نيز به غلام هغه وخت مكاتب وى.كله چې هغه پوره بدل كتابت ادا كړى.حضرت عمر، ابن عمر،عثمان، زيد بن ثابت، عائشه، ام سلمه، عروه بن الزبير رضي الله عنهم ،او سعيد بن المسيب، زهرى ، قاسم، سالم، سليمان بن يسار، عطاء، قتاده، سفيان ثورى ، اوزاعى ، ابن شبرمه ابن ابى ليلى ، اسحاق، ابوثور، ابو سليمان، امام مالك، امام شافعى ، ا مام احمد رحمهم الله غرض دا چې جمهور عالمان او فقهاء ددې قائل دى.

لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ څكه د نبى كريم ﷺ ارشاد دې. { أَيُّمَا عَبْدٍ كُوتِبَ عَلَى مِائَةِ دِينَارٍ چې كوم غلام په سل دينار باندې مكاتب كړې شو. فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشَرَةَ دَنَانِيرَ فَهُوَ عَبْدٌ } (١)نو هغه اداكړلې سوا د لس دينار نه،نو هغه به ( هم هغه شان) غلام وى. وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبى كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې. { الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ دِرْهَمٌ } (١)

١) من حديث عمروبن شعيب عن أبيه عن جده رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى ا لعتاق باب ١ رقم ٣٩٢٦ والترمذى فى البيوع باب ٣٥ رقم ١٢٦٠ وابن ماجه فى العتاق باب ٣ رقم ٢٥١٩ والنسائى فى السنن الكبرى (١٩٧\١٣) رقم ٥٠٢٦) والدارقطنى فى سننه (١٢١\٤) وأحمد فى المسند (١٧٨\٢) والحاكم فى المستدرك (٢١٨\٢)_

[illegible]تقدم تخريجه فى كتاب العتاق)_



چې مكاتب غلام دې.تر كومه پورې چې په ده يو درهم پاته وى.

تشريح: ددې تخريج اصحاب د سنن اربعه، دارقطنى ، او حاكم په ،،عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده،، سره كړې دې. ﴿أن النبى ﷺ قال أيما عبد كاتب على مأة أوقية فأداها إلا عشر أواق فهو عبد و أيما عبد كاتب على مأة دينار.... ﴾ او د حديث تخريج امام ابو داؤد په ذكر شوى سند سره كړي دې. ﴿عن النبى ﷺ قال المكاتب عبد ما بقى عليه من كتابته درهم﴾ او عدى په الكامل كې دا د حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روايت كړې دې. ﴿أنها قالت سمعت رسول الله ﷺ يقول المكاتب عبد ما بقى عليه درهم اوقية﴾ او امام مالك رحمه الله په موطا كې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه، ابن ابى شيبه رحمه الله د حضرت عمر، ابن عمر،على ، زيد بن ثابت، اود حضرت عائشه رضي الله عنها نه موقوفاً روايت كړې دې. ﴿المكاتب عبد ما بقى عليه شيء من كتابته﴾.

وَفِيهِ اخْتِلَافُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او په دې كې د صحابه كرامو رضي الله عنهم اختلاف دې. وَمَا اخْتَرْنَاهُ قَوْلُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (١)او مونږ چې كوم اختيار كړې دې.هغه د زيد بن ثابت رضي الله عنه قول دې.

تشريح: يعنى مكاتب به كله آزاديږى ؟ په دې اړه كې د صحابو رضي الله عنهم آثار مختلف دى.لكه چې حضرت عبدالرزاق دحضرت جابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت كړې دې. ﴿أن عمر بن الخطاب قال إذا أدى المكاتب إلا الشطر فلا رق عليه﴾. او ابن ابى شيبه د حضرت عمر رضي الله عنه نه ددې په خلاف داسې روايت كړې دې. ﴿أنه قال المكاتب عبد ما بقى عليه درهم﴾ او عبدالرزاق د حضرت عائشه، زيد بن ثابت، ابن عمر، اود حضرت ام سلمه رضي الله عنهم نه هم روايت كړې دى.اود حضرت ابن مسعود رضي الله عنهما نه ئې روايت كړې دې. ﴿قال إذا أدى قدر ثمنه فهو غريم﴾ او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ئې روايت كړې دې. ﴿قال إذا بقى على المكاتب خمس أواق أو خمس ذود أو خمسة أوسق فهو غريم﴾.

علامه مرغينانى رحمه الله فرمائى.چه مونږ د مكاتب د آزادئ اړه كې د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه قول اختيار كړې دې.چه دا په مسند د امام شافعى ، او په مصنف د عبدالرزاق، او ابن ابى شيبه، او سنن بيهقى كې نقل دې.،، و ذكره البخارى تعليقاً،،

### د آقا د صراحت نه بغير په بدل كتابت ادا كولو سره مكاتب آزاديږي

وَيَعْتِقُ بِأَدَائِهِ وَإِنْ لَمْ يَقُلِ الْمَوْلَى او آزاديږي به په بدل كتابت ادا كاوه سره،اګرچه آقا دا نه وى وئيلې. إِذَا أَدَّيْتَهَا فَأَنْتَ حُرٌّ چې كله ئې ته اداكړې.نو ته آزاد يې. لِأَنَّ مُوجِبَ الْعَقْدِ يَثْبُتُ مِنْ غَيْرِ التَّصْرِيحِ بِهِ كَمَا فِي الْبَيْعِ،څكه چې د عقد موجب ثابتيږي.ددې د تصريح نه بغير، لكه څنګه چې بيع كې دى.

تشريح: كله چې مكاتب بدل كتابت اداكړي.نو هغه به آزاديږى.اګرچه آقا دا نه وى وئيلې.چه كله ته بدل كتابت اداكړې.نو ته آزاد ئې.او آقا په كتابت سره دده د آزادئ نيت كړې وى.اوكه نه وى كړې.په جوهر نفى كې د ابن بنت نعيم كتابت د نوادرالفقهاء نه نقل دې.چه ددې په جواز د عالمانو اجماع ده.بغير د امام شافعى رحمه الله نه.چه ددوى په نيز نه آزاديږى.تردې چې آقا دا اووائى. ﴿كاتبتك على كذا إن أديته فأنت حر﴾ لكه چې په شرح وجيز كې دى. ﴿إن لم يصرح بالتعليق ( با لأداء) و لا نواه لم يحصل العتق و لم تصح الكتابة﴾ وجه د جواز داده.چه آزادى د عقد كتابت موجب دې.او مقتضاء د عقد ددې د صراحت نه بغير هم ثابتيږي.لكه څنګه چې بيع كې كيږي.او بله دا چې لفظ د كتابت عتق ( آزادئ) لپاره موضوع شوې دې.په دې وجه به نه د لفظ عتق وئيلو اړتيا وى.او نه به ددې د نيت كاوه اړتيا وى.لكه څنګه چې په لفظ تدبير كې دې.شيخ ابوبكر جصاص فرمائى.چه د الله تعالى قول ﴿فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ هم د آزادئ د شرط نه بغير ددې د جواز تقاضه كوى.چه دا په دې دلالت كوى.چه لفظ دكتابت آزادئ ته متضمن دې.لكه څنګه چې لفظ د خلع متضمن دې طلاق ته، او لفظ د بيع متضمن دې تمليك د عين ته، او اجاره متضمن ده تمليك د منافعو ته،

٢) أخرجه عبد الرزاق فى مصنفه والبيهقى فى سننه الكبرى (٥٤٥\١٠) رقم ٢١٦٤١)_

او نکاح د بضع منافعو ته متضمن وي.

> وَلَا يَجِبُ حَطُّ شَيْءٍ مِنَ الْبَدَلِ او د بدل کتابت نه څه کمول ضروري نه دي.

**تشریح:** د بدل کتابت نه څه کمول، د آقا په ذمه واجب او ضروري نه دي. البته که هغه پخپله څه معاف کړي نو دا مستحب او جائز دي. احناف، امام مالك، او سفيان ثوري رحمه الله هم ددې قائل دي. حضرت ابن سيرن، حسن، او ابراهيم نخعي رحمه الله نه هم دا نقل دي. ددې په خلاف د امام شافعي او امام احمد رحمه الله په نيز څه مقدار کمول واجب دي. او دليل دا آيت دې. ؟﴿وَآتُوهُمْ مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ﴾ وجه د استدلال داده. چه په دې کې ﴿وَآتُوا﴾ امر دې. او مطلق امر د وجوب لپاره وي. بيا ددې مخاطب د مکاتب موالي دي. هغوی ته دا حکم ورکړې شوې دې. چه هغوی د بدل کتابت نه څه کم کړي.

**جواب:** داده. چه د آيت مخاطب خاص طور سره د مکاتب موالي نه دي. بلکه ددې مخاطب عام دولت مند مسلمانان ﴿په تفسير طبري کې د ذکرشوي آيت لاندې د حضرت حسن رحمه الله قول «حث عليه مولاه وغيره» او د حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله قول «امر مولاه و الناس جميعاً أن يعينوه» په دې دلالت کوي چې مخاطب عام دولت مند مسلمانان دي د مکاتب مولا مراد نه دي. هغوی ته دا حکم ورکړې شوې دې. چې د داسې غلامانو امداد اوکړئ. که په مال د زکاة سره وي. او که په عامو صدقو او خيراتونو سره، چه هغوی زر آزادي حاصله کړي. لکه چې په مصارف د زکاة کې ﴿فِي الرِّقَابِ﴾ يو مد (مصرف) مقرر کړې شوې دې. دا هم ددې غلامانو د آزادولو يو فنډ دې. (د خلفاء راشدينو په زمانه کې به د بيت المال نه د داسې غلامانو امداد کيدلو).

**وجه داده. چه په آيت؟** ﴿وَآتُوهُمْ مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ﴾ کې د مال نه مراد ښکاره هغه مال مراد دې. کوم چې د مامور (بالايتاء) ملك وي. او هغه مال د صدقې (يعنی د زکاة) دې. کوم چې مالونو کې واجبيږي. ځکه چې هم دا هغه مال دې. چه ددې ملکيت مالك لپاره صحيح ثابت دې. او هم ددې نه د بعض د اخراج (غلام ته د ورکولو) حکم دې. «و اما مال المکاتبة فليس بدين صحيح» ددې نه علاوه آيت کې د ،،ايتاء،، يعنی د ورکاوه حکم دې. چه دا اعطاء ته وائي. او حط او وضع يعنی کمول يا بالکل ختمولو ته اعطاء نه وائي. او ﴿آتُوا﴾ امر د وجوب لپاره نه دې. بلکه د ندب يعنی استحباب لپاره دې. که د وجوب لپاره وو. نو د بدل کتابت څه به څه کمول واجب وو. نو حضرت عثمان رضی الله عنه به دخپل مکاتب په اړه کې داسې هيڅ کله نه وو فرمائيلی، چه «والله لا أعطيك منها درهماً»

**سوال:** د حضرت عطاء بن السائب نه نقل دی. چه حضرت ابوعبدالرحمان خپل يو غلام مکاتب کړو او څلورمه برخه د بدل کتابت ئې وضع (کمه) کړله. او وې فرمائيل. «ان علياً رضی الله عنه کان يأمرنا بذالك و يقول هو قول الله ﴿وَآتُوهُمْ مِنْ مَالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ﴾»

**جواب:** حافظ بيهقي د ابو الفتاح نه روايت کړې دې. «انه أتى علياً فقال أريد أن أكاتب قال أعندك شيء؟ فقال لا فجمعهم علی بن ابی طالب فقال أعينوا أخاكم فجمعوا له فبقي بقية عن مكاتبته فأتى علياً فسأله عن الفضيلة فقال إجعلها في المكاتبين» ،، ابو التياح د حضرت علی رضی الله عنه په خدمت کې حاضر شو. عرض ئې اوکړو. چه زه مکاتبت کول غواړم. هغوی اوفرمائيل. تا سره څه شته؟ هغه اووئيل نا، نو حضرت علي رضی الله عنه خلګ راجمع کړل. وې فرمائيل. د خپل رور کومك اوکړئ. نو خلګو دومره مال راجمع کړو. چه دده د مکاتب نه زياتې پاتې شو. ابوالتياح د زياتې مال اړه کې د حضرت علي رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړو. نو هغوی اوفرمائيل. چه دا د مکاتب غلامانو په اړه کې خرچ کړه،،

ددې روايت نه دوې (دوه) خبرې معلومې شوې. ① يوه دا چه د ﴿آتُوهُمْ﴾ مخاطب د عامو مالونو والا ... خاص طور سره د مکاتب موالي مراد نه دی. ② دويمه دا چه ﴿آتُوا﴾ امر د وجوب لپاره نه دې. ځکه چې ... علي رضی الله عنه د ابوالتياح آقا ته د مال ورکاوه يا د څه بدل کتابت کمولو لپاره اونه فرمائيل. بلکه د نورو ... ئې مال راجمع کړو. تردې چې ددې نه هم څه مال زياتې پاتې شو.



**سوال:** حافظ بيهقي د صحابو رضی الله عنهم د يو جماعت نه هم دا ذکرکړی دی. چه دې حضراتو به د بدل کتابت نه څه ناڅه کمول؟

**جواب:** دا به هم ددې حضراتو د اړخه د استحباب او احسان په طور وو. دا به ئې واجب نه ګڼړل لکه چې د ابن سيرين اثر «کان يعجبهم (اي الصحابة) أن يدعوا له طائفة من مكاتبته» په دې اړه کې صريح دې. چه دغه حضراتو به داسې د احسان په طور کول

> اعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ په بيع باندې قياس کاوه سره.

**تشریح:** دا زمونږ قياسي دليل دې. چه عقد کتابت هم يو عقد معاوضه ده. نو لکه څنګه چې په بيع کې د ثمن نه څه کمول د بائع په ذمه واجب نه دی. دغه ډول د کتابت د مال نه څه کمول به هم د آقا په ذمه واجب نه وي. او وجه د قياس داده. چه کتابت هم د غلام (پخپله) دده په لاس د خرڅولو په معنی کې دې.

### د عقد کتابت صورتونه

> قَالَ ﴿وَيَجُوزُ أَنْ يَشْتَرِطَ الْمَالَ حَالًّا﴾ و دا جائز دی. چه شرط اولګولې شي د مال في الحال (فوراً)، ﴿وَيَجُوزُ مُؤَجَّلًا وَمُنَجَّمًا﴾ وجائز دی نيته دار او په قسط وار هم.

**تشریح:** د عقد کتابت دوې (دوه) صورتونه دی. کتابت حاله، او کتابت مؤجله. کتابت حاله داده. چه غلام بدل کتابت في الحال اداکړي. «بأن يقول المولى کاتبتك على ألف درهم» (صرح به الولوالجي في فتاواه) کتابت مؤجله داده. چه بدل کتابت ميعادي (نيته دار) او قسط وار وی. «بأن يقول كاتبتك على ألف درهم إلى سنة يؤدى كل شهر من النجم كذا» ،، ما ته د يو کال په نيته د زر درهمو په عوض مکاتب کړې چه هره مياشت دومره قسط اداکوه،،

د احنافو اود امام احمد رحمه الله مسلك: زمونږ په نيز او په ظاهرالرواية کې د امام احمد رحمه الله په نيز دا دواړه صورتونه جائز دی. رویاني وغيره بعضو شوافعو هم دا اختيار کړې دې. او ابن التين په قول د امام مالك رحمه الله نه په دې اړه کې هيڅ نص نشته. په جواهر مالکيه کې دی. «قال ابوبكرة ظاهر قول مالك أن التنجيم و التاجيل شرط فيه ثم قال و علماؤنا يقولون أن الكتابة الحالة جائزة»

> وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: او امام شافعي رحمه الله فرمائي. لَا يَجُوزُ حَالًّا چې جائز نه دی د في الحال شرط کول، وَلَابُدَّ مِنْ نَجْمَيْنِ، او قسط وار کيدل ضروري دی. لِأَنَّهُ عَاجِزٌ عَنِ التَّسْلِيمِ فِي زَمَانٍ قَلِيلٍ لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ قَبْلَهُ لِلرِّقِّ، ځکه چې هغه په لږه زمانه کې ادا کاوه نه عاجز دې. ددې نه وړاندې د رقيت (غلامی) په وجه، د اهليت نه کيدلو په سبب.

**تشریح:** امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه د في الحال ادا کاوه شرط جائز نه دې. بلکه قسط وار کيدل ضروري دی. ځکه چې مکاتب في الحال ددې د ادا کاوه نه عاجز دې. ځکه چې د عقد کتابت نه وړاندې په ده کې د غلامۍ په وجه د ملك اهليت نه وو. اود عقد کتابت نه روسته په لږه زمانه کې د ډير مال ګټلو قدرت عادتاً نه ثابتيږي. نو هغه فوراً بدل کتابت نشي اداکولې. نو قسط وار کيدل ضروري دی.

> بِخِلَافِ السَّلَمِ عَلَى أَصْلِهِ په خلاف د سلم ددې په اصولو باندې، لِأَنَّهُ أَهْلٌ لِلْمِلْكِ ځکه چې هغه د ملکيت اهل دې. فَكَانَ احْتِمَالُ الْقُدْرَةِ ثَابِتًا، نود قدرت احتمال ثابت شو. وَقَدْ دَلَّ الْإِقْدَامُ عَلَى الْعَقْدِ عَلَيْهَا او عقد باندې اقدام کول په دې دلالت کوي. فَيَثْبُتُ نو په دې سره به قدرت ثابتيږي.

**تشریح:** د امام شافعي رحمه الله دليل: په خلاف د بيع سلم چې دا في الحال د امام شافعي رحمه الله په قاعده باندې جائز ده. ځکه چې د سلم په صورت کې د عقد سلم نه وړاندې مسلم اليه ته دده د آزادېدلو په وجه د ملکيت لياقت حاصل دی. نو عجز متعين نشو. بلکه د قدرت احتمال ثابت پاتې شو. يعنی د آزاد سړي ښکاره حال هم داده. چه ګويا هغه بالفعل هر مال باندې قادر دې. چه ددې دليل د مسلم اليه په عقد سلم باندې اقدام

کول دي.نو په سلم کې في الحال د ادا کاوه شرط کول جائز دي.په خلاف د کتابت، چې په دې کې مکاتب د مملوکيت په وجه په هيڅ مال قادر نه وو.نو هغه في الحال نشي اداکولې.نو په دې کې به في الحال د ادا کاوه شرط لګول جائز نه وي.

وَلَنَا ظَاهِرُ مَا تَلَوْنَا مِنْ غَيْرِ شَرْطِ التَّنْجِيمِ،او زمونږ دليل ښکاره دې.د هغه آيت چې مونږ تلاوت کړو.د قسط وار د شرط نه بغير.وَلِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ،او ځکه چې کتابت هم عقد معاوضه ده.وَالْبَدَلُ مَعْقُودٌ بِهِ،او بدل معقود به دې.فَأَشْبَهَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ،نو په بيع کې د ثمن مشابه شو.فِي عَدَمِ اشْتِرَاطِ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ،په دې باندې د قدرت شرط نه کيدلو کې.بِخِلَافِ السَّلَمِ عَلَى أَصْلِنَا،په خلاف د بيع سلم زمونږ په اصولو باندې.لِأَنَّ الْمُسْلَمَ فِيهِ مَعْقُودٌ عَلَيْهِ،ځکه چې مسلم فيه معقود عليه دې.فَلَا بُدَّ مِنَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ،نو په دې باندې قدرت کيدل ضروري دي.

**تشريح: د احنافو دليلونه:** زمونږ دليل ① د آيت ﴿فَكَاتِبُوهُمْ﴾ ظاهر دې.چه په دې کښې تنجيم او تاجيل يعنې د في الحال يا قسط وار کيدلو شرط لګول نص باندې زياتوالې دې.چه دا يو ډول له د نسخ په درجه کې وي.

② دوهم دليل دادې.چه کتابت هم يو عقد معاوضه ده.چه په دې کې عوض معقود به دې.چه مال ادا کاوه سره به غلام ته د خپل نفس آزادي حاصليږي.نو په کتابت کې به دا مال داسې وي.لکه څنګه چې بيع کې ثمن وي.چه په دې کې قدرت کيدل شرط نه دی.په دې وجه د قبضه نه وړاندې ددې بدل اخستل جائز دی.اودا د ثمن کيدلو علامت دې.

**سوال:** د مکاتب ادا کاوه نه عاجز کيدل د فسخ موجب وي.اودا د مبيع کيدلو علامت دې؟

**جواب:** په بدل کتابت کې دوې (دوه) سببه دی.من وجه ثمن دې.او من وجه مبيع دې.نو مونږ په دواړو جهتونو باندې عمل کاوه سره اوونيل.چه د مبيع کيدلو په لحاظ سره به کتابت فسخ کيږي.اود ثمن کيدلو په لحاظ سره ادا کاوه باندې قدرت کيدل شرط وي.په خلاف د سلم، چې په دې کې مسلم فيه معقود عليه وي.يعنې هرلحاظ سره مبيع وي.تردې چې د قبضې نه وړاندې ددې بدل اخستل جائز نه دی.نو په مسلم فيه به قدرت کيدل شرط وي.لکه څنګه چې مبيع کې وي.چه ددې د جواز لپاره د بائع په مبيع باندې قادر کيدل شرط نه دی. ﴿للإجماع على جواز إبتاع من لايملك الثمن﴾ دغه ډول په کتابت کې به هم دا شرط نه وي.چه غلام ته په مال باندې قدرت حاصل وي.

وَلِأَنَّ مَبْنَى الْكِتَابَةِ عَلَى الْمُسَاهَلَةِ،او ځکه چې د کتابت مدار په آسانتيا دې.فَيُمْهِلُهُ الْمَوْلَى ظَاهِرًا،نو اقا به په ښکاره ده ته مهلت ورکوي.بِخِلَافِ السَّلَمِ،په خلاف د سلم.لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى الْمُضَايَقَةِ،ځکه چې ددې مدار په تنګئ دې.وَفِي الْحَالِ كَمَا امْتَنَعَ مِنَ الْأَدَاءِ،او د في الحال په شرط کې چې څنګه د ادا کاوه نه منع کيږي.يُرَدُّ إِلَى الرِّقِّ،فوراً به غلامئ ارخ ته واپس کولې شي.

**تشريح: په کتابت او بيع سلم کې فرق:** په کتابت او سلم کې وجه د توپير دا هم ده.چه د کتابت مدار په آسانتيا او روسته کاوه سره وي.يعنې د انتظار کاوه قصد د مخکې نه وي.چه غلام آزاد شي.نوکه د في الحال ادا کاوه قرار داد وي.بيا هم ښکاره ده.چه آقا به ده ته مهلت ورکوي.په خلاف د بيع سلم.چه ددې مدار په تنګئ دې.چه په دواړو طرفونو کې هر يو خپل حق ګټل او اخستل غواړي.نو کوم وخت چې واجب شو.هم هغه وخت به ئې وصول کوي.

## د صغير غلام مکاتب جوړولو حکم

قَالَ (وَتَجُوزُ كِتَابَةُ الْعَبْدِ الصَّغِيرِ إِذَا كَانَ يَعْقِلُ الشِّرَاءَ وَالْبَيْعَ) او جائز دی د کم عمره غلام مکاتب کول، چې هغه په اخستلو خرڅولو پوهيږي.لِتَحَقُّقِ الْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ،د ايجاب او قبول متحقق کيدلو په وجه.إِذِ الْعَاقِلُ مِنْ أَهْلِ الْقَبُولِ،ځکه چې عاقل سړې د قبوليت د اهل ځنې دې.وَالتَّصَرُّفُ نَافِعٌ فِي حَقِّهِ. او تصرف دده په حق کې



نافع هم دې.وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِيهِ،او امام شافعي رحمه الله په دې کې زمونږ مخالف دې.وَهُوَ بِنَاءً عَلَى مَسْأَلَةِ إِذْنِ الصَّبِيِّ فِي التِّجَارَةِ،اودا اختلاف د تجارت په اړه کې د بچې د اجازت په مسئله باندې مبنی دې.وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ لَا يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ،اودا حکم ددې خلاف دې کله چې هغه په اخستلو خرڅولو نه پوهيږي.لِأَنَّ الْقَبُولَ لَا يَتَحَقَّقُ مِنْهُ،ځکه چې دده د اړخه قبول نه متحقق کيږي.فَلَا يَنْعَقِدُ الْعَقْدُ،نو عقد به نه منعقد کيږي.حَتَّى لَوْ أَدَّى عَنْهُ غَيْرُهُ،تردې که دده د اړخه بل چا اداکړو.لَا يَعْتِقُ،بيا به هم نه آزاديږي.وَيَسْتَرِدُّ مَا دَفَعَ. او کوم څه چې بل چا ورکړې دی.هغه به واپس اخلي.

**تشريح:** که يو غلام کم عمره وي.او اخستلو خرڅولو باندې پوهيږي.چه شراء جالب (نفع راځکونکې) ده.او بيع سالب (ثمن واجبونکې) ده.نو زمونږ په نيز د داسې صغير غلام مکاتب کول جائز دی.ځکه چې دده د اړخه به د ايجاب او قبول تحقق اوشي.امام شافعي رحمه الله په دې کې زمونږ خلاف دې.ددوی په نيز د صغير غلام مکاتب کاوه جائز نه دی.ددوی دا اختلاف په هغه اختلافي مسئلې باندې مبنی دې.چه داسې ماشوم چې هغه په تجارت کې توپير کولې شي.هغه ته د تجارت اجازت ورکول صحيح دی او که نه؟ نو زمونږ په نيز صحيح دی.ددوی په نيز صحيح نه دی.

قَالَ (وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ: چاچه خپل غلام ته اوونيل. جَعَلْتُ عَلَيْكَ أَلْفًا تُؤَدِّيهَا إِلَيَّ نُجُومًا، ما په تا باندې زر درهم کيخودل. چې ته به ئې ماته قسط وار راکوې. أَوَّلُ النَّجْمِ كَذَا وَآخِرُهُ كَذَا، رومبې قسط دومره او آخرې قسط دومره. فَإِذَا أَدَّيْتَهَا فَأَنْتَ حُرٌّ،نو کله چې ته دا ادا کړې.نو ته ازاد ئې. وَإِنْ عَجَزْتَ فَأَنْتَ رَقِيقٌ، او که ته عاجز شوې.نو ته غلام ئې. فَإِنَّ هَذِهِ مُكَاتَبَةٌ) نودا مکاتبه ده.لِأَنَّهُ أَتَى بِتَفْسِيرِ الْكِتَابَةِ،ځکه چې آقا کتابت په تفسير سره بيان کړو.

**تشريح:** په جامع صغير کې دی.چه يو سړې خپل غلام ته اوونيل.چه ما په تا باندې زر درهم کيخودل.چه دا به ته قسط وار اداکوې.ددې به رومبې قسط دومره او دوهم به دومره وي.يعنې مقدار او وخت ئې دواړه بيان کړل.بيا ئې اوونيل.که تا دا اداکړلې.نو ته آزاد يې.اوکه ته عاجز شوې.نو غلام به يې.نو دا کتابت صحيح دې.ځکه چې آقا کتابت تفسير سره بيان کړو.اوس به دې غلام سره دا احکام متعلق وي.چه دده بيع به جائز نه وي.په رضامندئ سره به کتابت فسخ کول جائز وي.که غلام څه بدل کتابت اداکړو.نو هغه به کفاره کې د ور کاوه محل نه پاتې کيږي.په خلاف د هغه غلام،چه د هغه ازادي په مال ادا کاوه باندې معلق وي.چه دده په حق کې به دا احکام برعکس وي.

بيا کافي کې دی.چه صحت په احسان مبني دې.د قياس په رو سره صحيح نه دې.ځکه چې زمونږ په نيز کتابت کې نجوم او قسطونه ذکرکول يوه زياتي خبره ده.چه ددې کيدل او نه کيدل برابر دی.نو قول د مولا ﴿قد جعلت عليك ألف درهم﴾ پاته پاتې شو.چه دا په ښکاره د قسطونو احتمال هم لري.او ﴿فإذا أديتها فأنت حر﴾ تعليق دې.وجه د استحسان داده.چه عقدونو کې اعتبار د معانو کيږي.او دلته کې د کتابت معنی موجود ده.او هرکله چې کتابت د اطلاق په صورت کې صحيح کيږي.نود تفسير په صورت کې به په طريقة اولی صحيح وي.

وَلَوْ قَالَ:اوکه ده اوونيل.إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ أَلْفًا كُلَّ شَهْرٍ مِائَةً چې کله ته زر درهم اداکړې.هره مياشت سل درهمه، فَأَنْتَ حُرٌّ،نو ته آزاد ئې.فَهَذِهِ مُكَاتَبَةٌ فِي رِوَايَةِ أَبِي سُلَيْمَانَ. نو دا هم مکاتبه ده.د ابوسليمان په روايت کې.لِأَنَّ التَّنْجِيمَ يَدُلُّ عَلَى الْوُجُوبِ،ځکه چې قسط کول په وجوب باندې دلالت کوي.وَذَلِكَ بِالْكِتَابَةِ،اودا وجوب د کتابت په ذريعه کيږي.

**تشريح:** او که آقا خپل غلام ته دا اوونيل.که تا ماته د مياشتې سل درهمه ادا کاوه سره زر درهم پوره کړل.نو ته آزاد ئې.نود شيخ ابوسليمان، موسى بن سليمان جوزجاني (صاحب امام محمد رحمه الله) په روايت کې د آقا

مذکوره قول مکاتبه ده.ځکه چې قسط کول ددې خبرې دلیل دی.چه آقا دا د غلام په ذمه واجب کړې دي.اودا وجوب به په ذریعه د کتابت وی.ځکه چې د تنجیم (قسط وار) استعمال د اسانتیا او سهولت لپاره وی.او آسانتیا په مال کې وی.اود مال وجوب په کتابت سره کیږي. «لأن المولی لایستوجب علی عبده دینا إلا بالکتابة» نو ددې نه موږ ته پته اولګیدله.چه ددې قسطونو نه د آقا مقصد د بدل ایجاب دی.

وَفِي نُسَخِ أَبِي حَفْصٍ لَا يَكُونُ مُكَاتَبَةً او د ابوحفص په نسخه کې به غلام نه مکاتب کیږي. اِعْتِبَارًا بِالتَّعْلِيقِ بِالْأَدَاءِ مَرَّةً. په یو وخت کې د ادا کاوه په تعلیق باندې قیاس کاوه سره.

تشريح: اود شیخ ابو حفص کبیر احمد بن حفص متوفی سن۲۱۷هـ(صاحب امام محمد رحمه الله) د نسخې په روایت کې دی.چه قول مذکور به مکاتبه نه وی.فخرالاسلام په مبسوط کې ونیلی دی.چه هم دا زیات صحیح ده.په دې دلیل که آقا دا اووانی. «إذا أدیت إلی ألفاً فی هذا الشهر فأنت حر» نودا به کتابت نه وی.نو هم دغه ډول به مذکوره قول کې هم نه وی.ځکه چې دلته کې داسې لفظ او نه موندې شو.چه هغه د کتابت په خصائصو کې وی.ځکه چې په ,, کل شهر مائة ،، سره تنجیم (قسطونه) اووتل.او قسطونه د کتابت په خصائصو کې نه دی.تردې چې دا د کتابت تفسیر اوګرځولې شی.ځکه چې قسطونه خو کله کله په هرډول دین کې کیداې شی.او کله کله پخپله کتابت کې هم نه وی.

### د کتابت نه روسته غلام باندې د قبضې حکم

قَالَ (وَإِذَا صَحَّتِ الْكِتَابَةُ) کله چې عقد کتابت صحیح شو. (خَرَجَ الْمُكَاتَبُ عَنْ يَدِ الْمَوْلَى) نو مکاتب د آقا د قبضې نه اووتلو. (وَلَمْ يَخْرُجْ عَنْ مِلْكِهِ) و دده د ملك نه نه دې وتلې. أَمَّا الْخُرُوجُ مِنْ يَدِهِ فَلِتَحْقِيقِ مَعْنَى الْكِتَابَةِ د آقا د قبضې نه وتل، خو د کتابت معنی متحقق کیدلو لپاره ده. وَهُوَ الضَّمُّ او هغه ملاوول دی. فَيُضَمُّ مَالِكِيَّةُ يَدِهِ إِلَى مَالِكِيَّةِ نَفْسِهِ نو هغه د خپلې قبضې مالکیت خپل ذاتی ملکیت اړخ ته ملاوهی. أَوْ لِتَحْقِيقِ مَقْصُودِ الْكِتَابَةِ یا د کتابت مقصود متحقق کیدلو لپاره دې. وَهُوَ أَدَاءُ الْبَدَلِ او هغه عوض اداکول دی. فَيَمْلِكُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ نو مکاتب د اخستلو خرڅولو، وَالْخُرُوجَ إِلَى السَّفَرِ او په سفر کې د تللو اختیار مند وی. وَإِنْ نَهَاهُ الْمَوْلَى، اګرچه آقا دې منع کړی.

تشريح: کله چې عقد کتابت صحیح شی.نو مکاتب د خپل آقا د قبضې نه اوځی.خو دده د ملکیت نه نه اوځی.د قبضې نه وتل خو ځکه دی.چه دکتابت معنی چې هغه ضم (ملاوول) دی.هغه متحقق شی.ګویا مکاتب خپله قبضه خپل ذاتی ملکیت اړخ ته ملاوهی.یعنی فی الحال ده ته د خپل لاس د مزدورئ اختیار او آخرکار د خپل ذات آزادی حاصلیږی.نود لاس اختیار دذات اختیار سره ملاویږی.یا د آقا د قبضې نه وتل ځکه دی.چه د کتابت کوم مقصد (عوض اداکول) دی.هغه حاصل شی. نو مکاتب ته د اخستلو خرڅولو، او په سفر کې د تللو اختیار حاصلیږی.(که سفر اوګد وی.او لنډ وی). اګرچه آقا ده لره په سفر کې د تللو نه منع کړې وی.امام احمد رحمه الله او په یو قول کې امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دی.ددوی دوهم قول دادې.چه د آقا د اجازت نه بغیر په سفر کې نشی تللې.د امام مالك رحمه الله قول هم دادې.او بعضو شوافعو په اوګد او لنډ سفر کې توپیر کړې دې.

وَأَمَّا عَدَمُ الْخُرُوجِ عَنْ مِلْكِهِ فَلِمَا رَوَيْنَا، اود آقا د ملك نه نه وتل، د هغه حدیث په وجه دی.کوم چې موږ روایت کړو. وَلِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ او ځکه چې کتابت یو عقد معاوضه ده. وَمَبْنَاهُ عَلَى الْمُسَاوَاةِ، چې دا په برابرئ باندې مبنی ده. وَيَنْعَدِمُ ذَلِكَ بِتَنَجُّزِ الْعِتْقِ اودا خبره به د فی الحال په آزادئ سره ختمیږی. وَيَتَحَقَّقُ بِتَأَخُّرِهِ او ددې په موخر کاوه سره به متحقق کیږی. لِأَنَّهُ يَثْبُتُ لَهُ نَوْعُ مَالِكِيَّةٍ ځکه چې مکاتب ته یو ډول مالکیت هم ملاوئ شو. وَيَثْبُتُ لَهُ فِي الذِّمَّةِ حَقٌّ مِنْ وَجْهٍ او په یو جهت دده په ذمه حق هم ثابت شو.



تشريح: اود آقا دملك نه د نه وتلو دلیل① یو خو مذکوره حدیث دې. «المکاتب عبد ما بقی علیه درهم» ② دوهم دلیل دادې.چه کتابت یو عقد معاوضه ده.چه دا د دواړو اړخه مساوات غواړی.حالانکه فی الحال د غلام په آزادیدلو سره دا خبره ختمه شوه.یعنی که هغه فی الحال آزاد شی.اود آقا د ملك نه اوځی.نو غلام ته به د خپل ذات عوض یعنی آزادی حاصله شی.حالانکه آقا ته لا اوس مال نه دې حاصل شوې.او یو ډول له دده په ذمه حق هم ثابت شو.

(فَإِنْ أَعْتَقَهُ) که آقا دې آزاد کړو. (عَتَقَ بِعِتْقِهِ) نو هغه به دده په آزادولو سره آزادیږی. لِأَنَّهُ مَالِكٌ لِرَقَبَتِهِ ځکه چې آقا هم دده د ذات مالك دې. (وَسَقَطَ عَنْهُ بَدَلُ الْكِتَابَةِ) اود مکاتب د ذمې څخه به بدل کتابت ساقطیږی. لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَهُ إِلَّا مُقَابَلًا بِحُصُولِ الْعِتْقِ بِهِ ځکه چې ده د مال التزام نه دې کړې.خو د خپل ځان لپاره د آزادئ حاصلولو په مقابله کې. وَقَدْ حَصَلَ دُونَهُ. حالانکه آزادی ددې نه بغیر حاصله شوه.

تشريح: که د مکاتب کاوه نه روسته آقا غلام آزاد کړو.نو آزادیږی.ځکه چې آقا اوسه پورې دده د ذات مالك دې.او کله چې دې آزاد شو.نو دده د ذمې څخه به بدل کتابت ختمیږی.ځکه چې ده ددې مال د ورکاوه التزام په دې طریقه کړې وو.چه ددې په عوض به ده ته آزادی حاصلیږی.حالانکه هغه ددې نه بغیر آزاد شو.نو هغه به ددې ذمه دار نه وی.

**مکاتبه وینځې سره د وطی کولو حکم**۞ که آقا د خپلې مکاتبه وینځې سره وطی اوکړله.نو دده په ذمه به عقر(مهر) لازم وی.یعنی ددې پشان ښځو چې کوم مهر وی.هغه ورکول به لازمی وی.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.د امام مالك رحمه الله په نیز به عقر واجب نه وی.امام احمد رحمه الله فرمائی.که مکاتبه سره ئې د وطی کاوه شرط اوکړو.نو واجب به وی.ګنې واجب به نه وی.بلکه سزا به ورکولې شی.ځکه چې دا وطی حرام ده.د حسن بصری رحمه الله نه نقل دی.چه په ده به حد واجب وی.ځکه چې ده د خپل ملك نه علاوه کې وطی کړې ده.بهرحال د احنافو او شوافعو رحمهم الله په نیز د وطی شرط کاوه په صورت کې به کتابت فاسد وی.د امام مالك رحمه الله په نیز به شرط فاسد وی.او عقد به صحیح وی.د امام احمد رحمه الله په نیز به شرط او عقد دواړه صحیح وی.

قَالَ (وَإِذَا وَطِئَ الْمَوْلَى مُكَاتَبَتَهُ) که آقا د خپلې مکاتبې وینځې سره جماع اوکړله. (لَزِمَهُ الْعُقْرُ) نو په ده عقر(مهر) لازم وی. لِأَنَّهَا صَارَتْ أَخَصَّ بِأَجْزَائِهَا تَوَسُّلًا إِلَى الْمَقْصُودِ بِالْكِتَابَةِ ځکه چې هغه د آقا په نسبت د خپلو اجزاؤ زیاته اختیار منده ده.د کتابت مقصود اړخ ته د توسل دپاره، وَهُوَ الْوُصُولُ إِلَى الْبَدَلِ مِنْ جَانِبِهِ او هغه عوض پورې رسیدل دی.د آقا د طرفه، وَإِلَى الْحُرِّيَّةِ مِنْ جَانِبِهَا بِنَاءً عَلَيْهِ، او آزادئ پورې رسیدل دی.د مکاتبه د طرفه،د ذکر شوی عوض په بناء باندې. وَمَنَافِعُ الْبُضْعِ مُلْحَقَةٌ بِالْأَجْزَاءِ وَالْأَعْيَانِ او د بضع منافع اجزاء او اعیان سره مولبنتی دی.

تشريح: د عقر د وجوب دلیل دادې.چه ذکرشوې مکاتبه د آقا په نسبت د خپلو اجزاؤ زیاته اختیارمنده جوړه شوې ده.چه ددې په ذریعه د کتابت مقصود حاصل کړې شی.او هغه دا دې.چه آقا ته مال د کتابت حاصل شی.او ددې په عوض کې وینځې ته آزادی حاصل شی.اود ښځې د بضع منافع چونکه په منزله د اجزاء او د اعیان دی. «حیث قابلها الشرع بالأعیان قال الله تعالی ﴿أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ﴾» نو ددې استحقاق هم وینځې ته حاصل دې.نو ددې نه منفعت حاصلولو کې به آقا ضامن وی.

(وَإِنْ جَنَى عَلَيْهَا أَوْ عَلَى وَلَدِهَا) او که آقا په مکاتبه یا ددې په بچی باندې جنایت اوکړو. (لَزِمَتْهُ الْجِنَايَةُ) لِمَا بَيَّنَّا نو په ده به دا جرم لازم وی.په هغه وجه کومه چې موږ بیان کړله. (وَإِنْ أَتْلَفَ مَالًا لَهَا غَرِمَ) او که دده څه مال ئې هلاك کړو.نو ضامن به وی. لِأَنَّ الْمَوْلَى كَالْأَجْنَبِيِّ فِي حَقِّ أَكْسَابِهَا وَنَفْسِهَا، ځکه چې آقا د اجنبی (غیر)

پشان دي.د مکاتبه د مزدورئ او ددې د ذات په حق کې .إِذْ لَوْ لَمْ يُجْعَلْ كَذٰلِكَ ځکه که داسې اونکړې شي.لَأَتْلَفَهُ الْمَوْلٰى نو آقا به دې هلاك کړي. فَيَمْتَنِعُ حُصُولُ الْغَرَضِ الْمُبْتَغٰى بِالْعَقْدِ، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ نو په عقد سره چې کوم غرض مقصود دې.د هغې حصول به ممتنع شي.

**تشریح:** که آقا پخپله مکاتبه وینځه باندې یا ددې په بچی باندې یا په مال باندې زیاتې ( او ظلم) اوکړو.نود آقا په ذمه به دا جرم لازم وی.یعنی د نفس د جنایت په صورت کې به دیت، اود مال د جنایت په صورت کې به د مال مثل یا ددې قیمت ورکول ضروري وی.ځکه تیر شو.چه مکاتبه د خپلو اجزاؤ پخپله مستحقه ده.البته د شبهٔ په وجه به قصاص نه لازمیږی.لکه چې د شمس الائمه بیهقی په کفایه کې ددې صراحت شته.او د مال په هلاکاوه به تاوان ځکه وی.چه دمکاتب او مکاتبې ګټه ( او مزدوری ) او ددوی د ذات په حق کې آقا د اجنبی په مثل وی.نود اجنبی پشان به هغه هم ضامن وی.که دا حکم ورنکړې شی.نو آقا به دده مال هلاك کړی.اود عقد کتابت سره چې کوم مقصود دې.د هغې حصول به مشکل شی.

## فصل في الكتابة الفاسدة

ژباړه: ( دا) فصل د کتابتِ فاسده ( په بیان کې ) دې.

**تشریح:** د کتابتِ فاسده احکام د کتابتِ صحیحه د احکامو نه روسته راوړی.چه ددې د مناسبت وجه د بیان محتاجه نه ده.ځکه چې د کتابتِ فاسده مرتبه د کتابتِ صحیحه نه ډیره کمه ده.

### دشرابو ،خنزیریا هم ددې غلام د قیمت په عوض د مکاتب کولوحکم

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَ الْمُسْلِمُ عَبْدَهُ عَلٰى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ کله چې مسلمان خپل غلام په شرابو یا په خنزیر مکاتب کړو. أَوْ عَلٰى قِيمَةِ نَفْسِهِ یا ئې پخپله ددې غلام په قیمت باندې مکاتب کړو. فَالْكِتَابَةُ فَاسِدَةٌ) نو کتابت فاسد دې.

**تشریح:** که یو مسلمان خپل مسلمان غلام د شرابو، یا د خنزیر په عوض یا پخپله هم ددې غلام په عوض مکاتب کړو. ﴿بان قال كاتبتك على قيمتك﴾ نودا کتابت په اجماع د احنافو او آئمه ثلاثه رحمهم الله فاسد دې.( دغه ډول که آقا ذمی اوغلام مسلمان وی.بیا به هم په خمر او خنزیر کتابت صحیح نه وی ).په ړومبی یعنی په شرابو او خنزیر باندې کتابت ځکه فاسدیږی.چه شراب او خنزیر د مسلمان په حق کې د متقوم مال نه کیدلو په وجه د بدل کیدلو صلاحیت نه لری.نو عقد کتابت د بدل نه بغیر شو.نو فاسد به وی.

أَمَّا الْأَوَّلُ بهر حال ړومبې فَلِأَنَّ الْخَمْرَ وَالْخِنْزِيرَ لَا يَسْتَحِقُّهُ الْمُسْلِمُ نودا ځکه چې د شرابو او خنزیز مستحق مسلمان نه وی.لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ فِي حَقِّهِ ځکه چې دا د مسلمان په حق کې مال نه دې. فَلَا يَصْلُحُ بَدَلًا نودا د عوض جوړیدلو قابل نه دی فَيَفْسُدُ الْعَقْدُ نو عقد به فاسد وی.

**تشریح:** کتابت په شرابو، او کتابت په خنزیر باندې په حقیقت کې دوې (دوه) مسئلې دی.په دې وجه تعبیر په،،اما الأول،، سره کیدل پکار نه دی.خو جهت د فساد کوم چې د مالیت عدم تحقق دې.په دې کې چونکه دواړه متحد دی.نو ګویا دواړه مسئلې یو دی.په دې وجه ئې دا دواړه په اول سره تعبیر کړې.د نفس مسئلې په لیکلو کې دې نکتې اړخ ته اشاره هم موجود ده.چه موصوف د قیمت ذکر کاوه په وخت د،، علی ،، حرف جار اعاده کړې ده.د خنزیر ذکر کاوه په وخت ئې دا نه دې راوړلې.

وَأَمَّا الثَّانِي پاتې شو دوهم امر، فَلِأَنَّ الْقِيمَةَ مَجْهُولَةٌ قَدْرًا وَجِنْسًا وَوَصْفًا نودا ځکه چې د غلام قیمت په قدر، جنس، او وصف کې مجهول دې. فَتَفَاحَشَتِ الْجَهَالَةُ نو جهالت شدید شو. وَصَارَ كَمَا إِذَا كَاتَبَ عَلٰى ثَوْبٍ أَوْ دَابَّةٍ،او داسې شوه.لکه چې په یوه کپړه یا څاروی باندې ئې مکاتب کړو.

**تشریح:** دوهم یعنی د غلام د نفس په قیمت باندې دکتابت فاسدیدل ځکه دی.چه د غلام قیمت دجنس، وصف او مقدار هر اعتبار سره مجهول دې.د قدر جهالت خو دادې.چه قیمت سل دوې (دوه) سوه دې.او که



زر یا دوې (دوه) زره دې.هیڅ معلومه نه ده.او جهالت د جنس ځکه دې.چه قیمت کله سرو زرو سره کیږی.کله په سپینو زرو سره، یعنی قیمت کله دراهم وی.او کله دنانیر وی.او جهالت د وصف دادې.چه اعلی ، یا ردی یا منځنی هیڅ ئې بیان نکړل.نو جهالت شدید شو.او داسې شوه.کله چې په یو څاروی یا کپړې باندې ئې مکاتب کړې وی.او جنس ئې نه وی بیان کړې.دا په اتفاق سره فاسد دې.ځکه چې سوارلئ او کپړه مختلف جنس دې.او کوم شئ چې مجهول الجنس وی.هغه په ذمه کې دین نه ثابتیږی.لکه ځنګه چې نکاح کې دی.

**سوال:** که آقا په مطلق غلام یا منځنی درجې والا غلام باندې مکاتب کړو.نودا زمونږ او د امام مالك رحمه الله په نیز صحیح دی.(اګرچه امام شافعی او امام احمد رحمهما الله ددې خلاف دی ).په دې صورت کې د منځنی درجې غلام یا ددې قیمت واجبیږی.تردې که دا مکاتب د منځنی درجې غلام قیمت پیش کړی.نو آقا به ددې په قبلولو باندې مجبوره کولې شی.که د قیمت په عوض مکاتب کول فاسد وو.نو دلته به صحیح نه ود.او هرکله چې په دې کې صحیح ده.نو په ذکر شوې مسئله کې کله چې ده د قیمت صراحت اوکړو.نو په دې کې هم کتابت صحیح کیدل پکار دی.

**جواب:** په ذکر شوې مسئله کې که قیمت واجب وی.نو ددې قیمت وجوب به قصداً وی.حکماً به نه وی.ځکه چې په دې کې د قیمت تصریح ده.او قیمت مجهول دې.نو قصداً واجبول ناممکن دی.او په اعتراض کې چې کومه مسئله ذکر ده.په هغې کې که قیمت واجب وی.نو د قیمت وجوب به حکماً وی.قصداً به نه وی.ځکه چې په دې کې د عهد تصریح ده.د قیمت نه ده.او شئ کله حکماً او ضمناً ثابتیږی.اګرچه دا قصداً نه ثابتیږی.لکه چې د عجل ( سخی ) ذبح کول جائز نه دی.خود مور تابع جائز دی.دغه ډول د جنین (حمل) بیع جائز نه ده.خود مور تابع جائز ده.

وَلِأَنَّهُ تَنْصِيصٌ عَلٰى مَا هُوَ مُوجَبُ الْعَقْدِ الْفَاسِدِ او ځکه چې د عقد فاسد په حکم باندې صراحت دې.لِأَنَّهُ مُوجِبٌ لِلْقِيمَةِ. ځکه چې عقد فاسد د قیمت موجب وی.

**تشریح:** د غلام په نفس قیمت باندې د کتابت فاسدیدلو دویمه وجه داده.چه په دې کې د عقد فاسد د حکم تصریح ده.ځکه چې د عقد فاسد موجب او مقتضی هم داده.چه قیمت واجب وی. ﴿ولو نص على العقد الفاسد يعقد بوصف الفساد فكذا إذا نص على موجبه﴾

### په شراب، یا خنزیر یا ددې په قیمت سره د آزادئ حکم

قَالَ (فَإِنْ أَدَّى الْخَمْرَ عَتَقَ)[1] بیا که ادا ئې کړل شراب،نو آزادیږی. وَقَالَ زُفَرُ:امام زفر رحمه الله فرمائی. لَا يَعْتِقُ إِلَّا بِأَدَاءِ قِيمَةِ نَفْسِهِ، چې نه آزادیږی.خو د شرابو د قیمت په ادا کاوه سره.لِأَنَّ الْبَدَلَ هُوَ الْقِيمَةُ. ځکه چې عوض خو قیمت دې.

**تشریح:** بیا که مذکوره مکاتب په ړومبئ مسئله کې شراب یا خنزیر ورکړی.یا په دویمه مسئله کې د خپل ذات قیمت ورکړی.نو هغه آزادیږی.که آقا هغه ته ﴿إن أديت إليّ فانت حر﴾ ونیلی وی.او که نه وی ونیلی.زمونږ د علماء ثلاثه نه ظاهرالروایة هم دغه دې.امام زفر رحمه الله فرمائی.چه هغه د خپل ذات د قیمت ادا کاوه نه بغیر نه آزادیږی.ځکه چې په کتابتِ فاسده کې بدل او عوض هم دا قیمت دې.لکه ځنګه چې بیع فاسد کې کیږی.

**تنبیه:** د هدایه په دې موجوده نسخه کې د نورو نسخو پشان عبارت هم دغه ډول دې. ﴿و قال زفر رحمه الله لايعتق إلا باداء قيمة الخمر﴾ صاحب د کافی فرمائی.چه دا نسخه مشکل ده.ځکه چې دا د کتابونو د عامو روایاتو

[1]) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا في العناية (١٠٠١٨) وردالمحتار(٦٩١٥) ومجمع الأنهر(٧١٤) والبحرالرائق (٧٥١٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٨١٢)

خلاف ده.په عامو رواياتو كي هم داسې دي. «لا يعتق إلا بأداء قيمة نفسه و قال الزيلعي في التبيين و في بعض نسخ الهداية و قال زفر لا يعتق إلا بأداء قيمة الخمر و هو غلط من الكاتب».

| وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دي. أَنَّهُ يُعْتَقُ بِأَدَاءِ الْخَمْرِ چې په شرابو ادا كاوه سره آزاديږي. لِأَنَّهُ بَدَلٌ صُورَةً،خكه چې دا عوض دې صورتاً ،وَيُعْتَقُ بِأَدَاءِ الْقِيمَةِ أَيْضًا اود قيمت ادا كاوه سره به هم آزاديږي. لِأَنَّهُ هُوَ الْبَدَلُ مَعْنًى.خكه چې دا عوض دې معناً. |
|---|

تشريح: د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.كه مكاتب مذكور بعينه شراب اداكړي.نو هغه آزاديږي.خكه چې دا صورتاً عوض دې.او كه قيمت اداكړي.بيا به هم آزاديږي.خكه چې دا معنوي بدل دې.شيخ سغناقي رحمه الله فرمائي.چه علامه مرغيناني رحمه الله كوم حكم ذكركړې دې.دا زمونږ د علماء ثلاثه ظاهرالرواية دې.لكه خنګه چې مبسوط او ذخيره كي ذكر دى.نو دلته كي د تحرير حق دا وو.چه نه موصوف د امام ابويوسف رحمه الله تخصيص كړې وو.او نه ئې كلمه د ،،عن،، راوړلې وه.

صاحب د عنايه رحمه الله فرمائي.چه د شيخ سغناقي رحمه الله دا خبره به هغه وخت صحيح وى.كله چې «و يعتق بأداء القيمة أيضا»كي د ،،القيمة،، الف لام د نفس مكاتب نه كنايه اومنلې شي.اوكه دا د خمر نه كنايه وى.لكه خنګه چې په غاية البيان كي ذكر دى.نو په دې صورت كي د شرابو قيمت ادا كاوه سره د مكاتب آزاديدل ممكن دى.دا دامام ابويوسف رحمه الله نه غيرظاهرالرواية دې.

الحاصل: د آئمه ثلاثه رحمهم الله نه ظاهرالرواية دادې. چې مذكوره مكاتب په بعينه شرابو ادا كاوه سره، او دخپل قيمت په ادا كاوه سره آزاديږي.اود امام ابويوسف رحمه الله نه چې كوم روايت په كلمة د ،،عن،، ذكركړې شوې دې.په هغې كي د القيمة الف لام كه د شرابو په بدله كي اومنلې شي.نو مطلب به دا وى.چه د عين شرابو په ادا كاوه سره به هم آزاديږي.اود شرابو قيمت ادا كاوه سره به هم آزاديږي.او ښكاره ده.چه دا روايت د امام ابويوسف رحمه الله نه د ظاهرالرواية خلاف دې.

| وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ إِنَّمَا يُعْتَقُ بِأَدَاءِ عَيْنِ الْخَمْرِ چې په عين خمر ادا كاوه سره به هغه وخت آزاديږي. إِذَا قَالَ إِنْ أَدَّيْتَهَا فَأَنْتَ حُرٌّ كله چې غلام ته آقا دا ونيلې وى. «إن أديتها فأنت حر» لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ الْعِتْقُ بِالشَّرْطِ لَا بِعَقْدِ الْكِتَابَةِ،خكه چې په دې صورت كي به آزادي د شرط په وجه وى.د عقد كتابت په وجه به نه وى. وَصَارَ كَمَا إِذَا كَاتَبَ عَلَى مَيْتَةٍ أَوْ دَمٍ اودا داسې شوه.لكه چې په مردار يا وينې سره ئې مكاتب كړې وى. |
|---|

تشريح: او په نوادر كي د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې.چه د شرابو په ادا كاوه به آزادي هغه وخت حاصليږي.كله چې آقا هغه ته دا ونيلې وى. «إن أديت الخمر فأنت حر» نو په دې صورت كي به مكاتب آزاديږي.او په ده به د خپل ذات قيمت واجب وى.د قيمت وجوب خكه دې.چه په عقد فاسد كي كله معقود عليه هلاك كړې شى.نو په دې كي قيمت واجبيږي.لكه په بيع فاسد كي كه مشترى سره مبيع هلاك شى.نو ددې قيمت واجبيږي.اود آزادئ وجه داده.چه په دې صورت كي به دا آزادي د ذكرشوى شرط ،،إن اديت،، په وجه وى.د عقد كتابت په وجه به نه وى.او دا داسې شوه.لكه چې د مردار يا وينې په عوض ئې مكاتب كړې وى.چه ددې په ادا كاوه سره هغه وخت آزاديږي.كله چې آقا دا ونيلې وى. «إن أديت الميتة أو الخمر فأنت حر»

| وَلَا فَصْلَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ. او په ظاهرالرواية كي هيڅ توپير نشته. وَوَجْهُ الْفَرْقِ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الْمَيْتَةِ او په شرابو، خنزير او مردار كي وجه د توپير داده. أَنَّ الْخَمْرَ وَالْخِنْزِيرَ مَالٌ فِي الْجُمْلَةِ چې شراب او خنزير فى الجمله مال دې. فَأَمْكَنَ اعْتِبَارُ مَعْنَى الْعَقْدِ فِيهِ،نو په دې دواړوكي د عقد د معنى اعتبار كول ممكن دى. وَمُوجَبُهُ الْعِتْقُ عِنْدَ أَدَاءِ الْعِوَضِ الْمَشْرُوطِ. او ددې تقاضا داده.چه آزاديدل دى.د مشروط عوض ادا كاوه په وخت، وَأَمَّا الْمَيْتَةُ فَلَيْسَتْ بِمَالٍ أَصْلًا پاتې شو مردار نو هغه بالكل مال نه دې. فَلَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ مَعْنَى الْعَقْدِ فِيهِ نو په دې كي د عقد د |
|---|



| معنى اعتبار كول نا ممكن دى. فَاعْتُبِرَ فِيهِ مَعْنَى الشَّرْطِ نو په دې كي د شرط د معنى اعتبار اوكړې شو. وَذَلِكَ بِالتَّنْصِيصِ عَلَيْهِ او دا به ددې په تصريح سره كيږي. |
|---|

تشريح: د شرابو او خنزير مسئلې په اړه كي ، ظاهرالرواية كي د شرط ذكر كاوه او نه ذكر كاوه هيڅ توپير نشته.بلكه «إن اديت الخمر فانت حر» اووائي.اوكه اونه وائي.په دواړو صورتونو كي آزاديږي.اود نوادر په روايت كي توپير دې.نو په ظاهرالرواية كي د شرابو او خنزير، او د مردارې او وينې په منځ كي وجه د توپير داده.چه شراب او خنزير خو فى الجمله مال دې.اګرچه د مسلمان په حق كي متقوم مال نه دې.نود ماليت په اعتبار سره په دې كي معنى د عقد ، يعنى د معاوضة اعتبار كول ممكن دى.اود عقد دمعنى موجب هم دا عتق ( آزادى ) ده.كله چې د مشروط عوض ادائيګى اوشى.پاتې شو مردار او وينه، نودا بالكل مال نه دې.نو په دې كي د عقد د معنى اعتبار كول هم ناممكن دى.په دې وجه به په دې كي د شرط د معنى اعتبار كيږي.خو دا اعتبار به هغه وخت كيږي.كله چې آقا د شرط صراحت كړې وى. «بأن قال إذا اديت الميتة أو الدم فانت حر».

## د شرابو په اداكولو سره د آزادئ حكم

| (وَإِذَا عَتَقَ بِأَدَاءِ عَيْنِ الْخَمْرِ كله چې دې آزاد شو.په عين شرابو ادا كاوه سره. لَزِمَهُ أَنْ يَسْعَى فِي قِيمَتِهِ) نو په ده دا لازم دى.چه پخپل قيمت كي مزدوري اوكړي. لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ رَدُّ رَقَبَتِهِ لِفَسَادِ الْعَقْدِ،خكه چې په ده خپل رقبه واپس كول واجب شو.د عقد د فساد په وجه. وَقَدْ تَعَذَّرَ بِالْعِتْقِ حالانكه دا د عتق په وجه متعذر شو. فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهِ كَمَا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ نو خپل قيمت واپس كول به واجب وى.لكه څنګه چې بيع فاسد كي كيږي. إِذَا تَلِفَ الْمَبِيعُ. كله چې مبيع هلاك شي. |
|---|

تشريح: په مذكوره مسئله كي چې كله مكاتب بعينه شراب اداكړي.او آزاد شي.نو هغه به پخپل قيمت كي مزدوري كوى.يعنى خپل قيمت به ګټى.او آقا ته به ئې وركوى.خكه چې دلته د فاسد عقد په وجه رقبه واپس كول واجب دى.خو دده د آزادولو په وجه رقبه واپس كول متعذر دى.خكه به قيمت واجب وى.لكه څنګه چې په بيع فاسد كي كه مشترى سره مبيع هلاك شي.نو قيمت واجبيږي.خو ظاهرالرواية هم هغه دې.كوم چې وړاندې تير شو.

| قَالَ (وَلَا يَنْقُصُ عَنِ الْمُسَمَّى وَيُزَادُ عَلَيْهِ) لِأَنَّهُ عَقْدٌ فَاسِدٌ فَتَجِبُ الْقِيمَةُ عِنْدَ هَلَاكِ الْمُبْدَلِ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ كَمَا فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ |
|---|

او كمولې به نشى د بيان شوى مقدار نه.او په دې باندې زياتوالې كيداې شى.خكه چې داخو عقد فاسد دې.نود تبديل شوى شئ هلاكيدلو باندې به قيمت واجب وى.چرته هم چې اورسيږي.لكه څنګه چې بيع فاسد كي كيږي.

تشريح: په كوم قيمت كي به چې مذكوره مكاتب مزدورى كوى.په دې كي به د هغه مقدار نه كمى نه كيږي.كوم چې د آقا د اړخه بيان شوې وو.البته په دې كي زيادت كيداې شى.كوم خائې پورې هم چې وى.خكه چې دا عقد فاسد واقع شوې وو.نو لكه څنګه چې په بيع فاسد كي د مبيع هلاكيدلو په وخت ددې قيمت واجبيږي.خومره هم چې وى.هم دغه ډول به دلته كي هم واجبيږي.

| وَهَذَا لِأَنَّ الْمَوْلَى مَا رَضِيَ بِالنُّقْصَانِ اودا خكه دى.چه آقا په نقصان نه دې راضى شوې. وَالْعَبْدُ رَضِيَ بِالزِّيَادَةِ او غلام په زياتوالى باندې راضى شو. كَيْ لَا يَبْطُلَ حَقُّهُ فِي الْعِتْقِ أَصْلًا چې په عتق كي دده حق باطل نشى. فَتَجِبُ قِيمَتُهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ،نو قيمت به واجب وى.چرته هم چې اورسيږي. |
|---|

تشريح: پورته چې كوم دا ذكر شو.چه قيمت به د مسمى نه نشى كمولې.البته زياتيدې شى.ددې وجه داده.چه آقا د عقد كتابت مسمى مقدار واجب كړې دې.نو هغه ددې نه په كم باندې نه دې راضى شوې.البته غلام په زياتى مقدار باندې راضى شوې دې.چه دهغه د آزادئ حق فوت نشى.خكه كه هغه په زياتى مقدار سره نه

راضي كيدلو.نو اقا به دده د ازادولو نه منع كيږي.اود مكاتب د لاسه به د ازادئ نعمت اوځي.او په دې وجه هم چې هركله مكاتب په عقد فاسد باندې اقدام كړې دې.حالانكه هغه پوهيږي.چه عقد فاسد كې قيمت واجبيږي.نو هغه د قيمت په ادا كاوه سره راضي شو.اګرچه قيمت د مسمى مقدار نه زيات وي.

وَفِيمَا إِذَا كَاتَبَهُ عَلَى قِيمَتِهِ يُعْتَقُ بِأَدَاءِ الْقِيمَةِ لِأَنَّهُ هُوَ الْبَدَلُ. او غلام دده په قيمت باندې د مكاتب كاوه په صورت كې ، د قيمت ادا كاوه سره به خكه آزديږي.چه قيمت عوض دې.وَأَمْكَنَ اعْتِبَارُ مَعْنَى الْعَقْدِ فِيهِ او په دې كې د عقد د معنى اعتبار كول ممكن دی.

تشريح: د مسئلي په پيل كې چې ئې ،،على خمر،، اود خنزير نه روسته ئې چې ،،او على قيمة،،ونيلي وو.دا هم دې ارخ ته راجع دې.مطلب دادې.كه غلام ئې ددې په قيمت باندې مكاتب كړو.نو هغه به د خپل قيمت په ادا كاوه آزاديږي.خكه چې قيمت دده عوض دې.او په دې كې د عقد كتابت اعتبار كول هم ممكن دی.په دې طريقه چې مكاتب دومره قيمت اداكړي.چه په دې كې د قيمت لګونكو هيڅ اختلاف پاتې نشي.مثلاً يوكس دده قيمت ۳۰ درهمه اولګولو. دوهم كس ۳۵، دريم كس ۴۰،او مكاتب ۴۰ درهمه اداكړل.نو دې د خپل قيمت ادا كاوه والا شو.

وَأَثَرُ الْجَهَالَةِ فِي الْفَسَادِ،اود جهالت اثر صرف په فساد كې دې.بِخِلَافِ مَا إِذَا كَاتَبَهُ عَلَى ثَوْبٍ په خلاف ددې كله ئې چې په كپړې مكاتب كړو.حَيْثُ لَا يُعْتَقُ بِأَدَاءِ ثَوْبٍ چې په كپړې ادا كاوه سره به نه آزاديږي.لِأَنَّهُ لَا يُوقَفُ فِيهِ عَلَى مُرَادِ الْعَاقِدِ لِاخْتِلَافِ أَجْنَاسِ الثَّوْبِ خكه چې په دې كې د عاقد مراد باندې خبرداري نشي كيدې.د كپړو د مختلف كيدلو په وجه.فَلَا يَثْبُتُ الْعِتْقُ بِدُونِ إِرَادَتِهِ نو دده د ارادې نه بغير به آزادي نه ثابتيږي.

سوال: دا د يو سوال خواب دې.سوال دادې.چه د كپړو پشان دلته كې هم قيمت مجهول دې.نو لكه څنګه چې كپړې باندې د مكاتب كاوه په صورت كې د كپړې په ادا كاوه سره آزادي نه حاصليږي.دغه ډول د قيمت په ادا كاوه هم آزادي حاصليدل پكار نه دی.بلكه عقد باطليدل پكار دی ؟

جواب: حاصل دخواب دادې.چه د قيمت د جهالت اثر صرف د عقد په فاسديدلو كې دې.چه په دې سره به عقد فاسديږي.باطليږي نه.او په فاسد عقد كې هم دا قيمت واجبيږي.په خلاف د كپړې.چه خالي په كپړه ونيلو سره د آقا مراد نه معلوميږي.خكه چې د كپړو قيمتونه مختلف دی.

## د بل كس په معين څيز باندې د مكاتب كولو حكم

قَالَ (وَكَذَلِكَ إِنْ كَاتَبَهُ عَلَى شَيْءٍ بِعَيْنِهِ لِغَيْرِهِ دغه ډول كه مكاتب ئې كړو په يو معين شئ باندې.چه دا د بل چا وو.لَمْ يَجُزْ) نو جائز نه دی.لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهِ. خكه چې ددې په سپارلو باندې قادر نه دې.

تشريح: ،،لغيره لفظ،، د شي ء نه حال دې.او شئ اګرچه نكره ده.چه دا ذوالحال نشي كيدې.خو دلته كې بعينه د صفت په وجه تخصيص اوشو.په دې وجه ذوالحال كيدل صحيح شو.مسئله داده.كه آقا غلام د بل چا د معين شئ مثلاً د اس، كپړو، يا د غلام په عوض مكاتب كړو.نو زمونږ اود امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز دا هم فاسد دی.خكه چې غلام د بل شئ سپارلو نه عاجز دې.د امام مالك رحمه الله په نيز جائز دی.اوس دې غلام هغه شئ واخلي.او وردې كړي.او كه مالك ئې خرڅ نكړي.نو د هغې قيمت دې وركړي.

وَمُرَادُهُ شَيْءٌ يَتَعَيَّنُ بِالتَّعْيِينِ،او مراد داسې شئ دې.كوم چې معين كيږي.په تعيين سره.حَتَّى لَوْ قَالَ تردې كه وې ونيل.كَاتَبْتُكَ عَلَى هَذِهِ الْأَلْفِ الدَّرَاهِمِ چې ته ما په دې زر درهمو باندې مكاتب كړې.وَهِيَ لِغَيْرِهِ حالانكه دا د غير دې.جَازَ نو جائز به وي.لِأَنَّهَا لَا تَتَعَيَّنُ فِي الْمُعَاوَضَاتِ خكه چې دراهم په معاوضاتو كې نه متعين كيږي.فَيَتَعَلَّقُ بِدَرَاهِمَ دَيْنٍ فِي الذِّمَّةِ نو عقد به داسې دراهمو سره متعلق كيږي.كوم چې په ذمه باندې پور وي.فَيَجُوزُ. نو عقد به جائز وي.



تشريح: على شئ بعينه كې لفظ دشئ نه د امام محمد رحمه الله مراد داسې شئ دې.كوم چې معين كاوه سره معين كيداې شي.لكه دا كپړه، دا اس، دا غلام، دا كور وغيره.او كه دا شئ نه متعين كيږي. «بان قال كاتبتك على هذا الألف الدراهم» حالانكه دا زر درهم د بل چا ملك دې.نو عقد كتابت به جائز وي.خكه چې دراهم او دنانير اګر چې په امانت او غصب كې متعين كيږي.خو په معاوضاتو كې نه متعين كيږي.نو عقد كتابت به داسې دراهمو سره متعلق كيږي.كوم چې د غلام په ذمه پور وي.د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز په دې صورت كې هم كتابت جائز نه وي.خكه چې ددوی په نيز دراهم او دنانير هم متعين كيږي.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي رِوَايَةِ الْحَسَنِ أَنَّهُ يَجُوزُ،اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه حسن روايت كړې دې.چه عقد جائز دې.حَتَّى إِذَا مَلَكَهُ تردې كه هغه ددې مالك شي.وَسَلَّمَهُ يُعْتَقُ،او آقا ته ئې وركړي.نو آزاديږي به.وَإِنْ عَجَزَ او كه عاجز شي.يُرَدُّ فِي الرِّقِّ نو غلام كولې به شي.لِأَنَّ الْمُسَمَّى مَالٌ خكه چې مسمى شئ مال دې.وَالْقُدْرَةُ عَلَى التَّسْلِيمِ مَوْهُومَةٌ اود سپارلو قدرت هم شكي دې.فَأَشْبَهَ الصَّدَاقَ. نود مهر مشابه شو.

تشريح: د مسئلي دصورت تشريح داده.چه دغير په شئ باندې مكاتب كاوه كې دوې (دوه) صورتونه دی.دغه شئ به متعين كاوه سره متعين كيږي.مثلاً اس، غلام وغيره.يا به نه متعين كيږي.لكه نقود يعنى دراهم او دنانير.د رومبى بيا دوې (دوه) صورتونه دی.مالك به دا جائز ګرځوی.يا به ئې جائز نه ګرځوی.كه جائز ئې اونه ساتلو.نو بيا دوې (دوه) صورتونه دی.مكاتب به يا په يوه ذريعه سره ددې مالك كيږي.او آقا ته به ئې سپاري.يا نه.دا وارہ څلور صورتونه شو.نوكه دا شئ په متعين كاوه سره نه متعين كيږي.نو عقد كتابت به جائز وي.لكه چې رومبى قول كې بيان شو.او كه متعين كيږي.او مالك ددې اجازت ورنكړي.اومكاتب ددې په څه ذريعه سره مالك هم نشي.نو په ظاهرالروايه كې به جائز نه وي.او د حسن په روايت كې به جائز وي.اوس كه مكاتب ددې شئ ملكيت حاصل كړي.او آقا ته ئې وركړي.نو آزاديږي به.اوكه ورئې نكړې شو.نو غلام به جوړولې شی.خكه چې كوم شئ مسمى دې.هغه مال دې.اود سپارلو قدرت هم ( د ملك د ثبوت په احتمال باندې) موهوم ( شكى ) دې.نو د غيرپه مال سره شوې بدل كتابت د ښځې هغه مهر سره مشابه شو.كوم چې د غير په مال سره وي.مثلاً يوې ښځې د غير په غلام باندې نكاح اوكړله.نو تسميه صحيح ده.اوس كه د غلام مالك اجازت ورنكړو.نو ښځه به د ميړه نه د غلام قيمت اخلي.مهر مثل به نه اخلي. «ولو كانت التسمية فاسدة لرجعت بمهر المثل»

قُلْنَا:مونږ دا وايو.إِنَّ الْعَيْنَ فِي الْمُعَاوَضَاتِ مَعْقُودٌ عَلَيْهِ چې معاوضه كې مال عين معقود عليه وي.وَالْقُدْرَةُ عَلَى الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ شَرْطٌ لِلصِّحَّةِ او معقود عليه باندې قدرت كيدل شرط دی.د عقد د صحت دپاره.إِذَا كَانَ الْعَقْدُ يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ كَمَا فِي الْبَيْعِ،كله چې عقد قابل د فسخ وی.لكه څنګه چې بيع كې كيږي.

تشريح: د ظاهرالروايه وجه داده.چه په معاوضاتو كې مال عين ( بدل كتابت) مقصود عليه وی.اود عقد صحيح كيدلو لپاره مقصود عليه باندې د قدرت كيدل شرط دی.كله چې عقد كامل فسخ شوې نه وی.لكه څنګه چې بيع كې كيږي.

سوال: وړاندې تير شو.چه د بدل كتابت داسې دې.لكه څنګه چې بيع كې د ثمن وی.په دې بنا (بنياد) باندې كتابت حاله جائز شوې وو.او ثمن مقصود به وی.مقصود عليه نه وی.نو په دې باندې به قدرت كيدل شرط نه وی

جواب: د بدل كتابت لپاره د ثمن حكم كيدل هغه وخت دی.كله چې دا د نقود څخې وی.او [illegible] معين شئ په اړه كې دې.چه د عين په صورت كې عقد كتابت په منزله د مقايضه وی.اود [illegible] لپاره د مبيع حكم وی.( د ثمن نه وی ).

بِخِلَافِ الصَّدَاقِ فِي النِّكَاحِ په خلاف د مهر،چه دا په نكاح كې كيږي.لِأَنَّ الْقُدْرَةَ عَلَى مَا هُوَ الْمَقْصُودُ بِالنِّكَاحِ لَيْسَ

يَشْتَرِطُ،خکه،چې نکاح سره کوم مقصود دې،هغې باندې قدرت کيدل شرط نه دی. فَعَلٰى مَا هُوَ تَابِعٌ فِيهِ أَوْلٰى نو مهر کوم چې تابع دې،هغې باندې به قدرت په درجه اولی شرط نه وی.

**تشريح:** په روايت د حسن کي د ،،فانبه الصداق،،خواب دې،چه په خلاف د مهر کوم چې په نکاح کي وی،چه په نکاح کي د صحت د تسميه لپاره د مسمی صرف قيمتی مال کيدل شرط دی. مقدورالتسليم کيدل شرط نه دی،خکه چې نکاح سره کوم اصلی مقصود دې،يعنی توالد او تناسل ( او په قول د صاحب د نهايه رحمه الله منافع د بضع) هغې باندې قدرت کيدل شرط نه دی.تردې چې د پيو څکونکې ماشومې سره نکاح جائز ده،( اګرچه قدرت معدوم دې).نو کوم شئ چې مقصود نه وی،بلکه تابع وی،يعنی مهر هغې باندې به قدرت کيدل په طريقه اولی شرط نه وی.

## د عين څيز د مالك په اجازت ورکولو د عقدکتابت حکم

فَلَوْ أَجَازَ صَاحِبُ الْعَيْنِ ذٰلِكَ بيا که مالك د عين دا جائز اوساتلو. فَعَنْ مُحَمَّدٍ نود امام محمد رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ يَجُوزُ چې عقد به جائز وی. لِأَنَّهُ يَجُوزُ الْبَيْعُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ خکه چې اجازت سره بيع جائز کيږی. فَالْكِتَابَةُ أَوْلٰى. نو کتابت به په درجه اولی جائز وی.

**تشريح:** بيا که دې غير سړی کوم چې ددې مال معين ( بدل کتابت) مالك دې،هغه اجازت ورکړو.نو عقد کتابت به جائز وی.اوکه نه؟ په دې اړه کي روايات مختلف دی.د امام محمد رحمه الله نه روايت دې،چه عقد به جائز وی.خکه چې هرکله د مال غير په عوض د څه شئ اخستلو په صورت کي د مالك د اړخه په اجازت کيدلو باندې بيع جائز کيږی.حالانکه د بيع مدار په سختئ او تنګئ دې،نو کتاب به په طريقه اولی جائز وی.حالانکه ددې مدار په آسانتيا ، نرمئ او بې پرواهئ دې.

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ لَا يَجُوزُ اعْتِبَارًا بِحَالِ عَدَمِ الْإِجَازَةِ عَلٰى مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ ، چې جائز به نه وی.د عدم اجازت په حالت باندې قياس کاوه سره.لکه څنګه چې کتاب کي ذکر دی. وَالْجَامِعُ أَنَّهُ لَا يُفِيدُ مِلْكَ الْمَكَاسِبِ او امر جامع په دواړو کي دادې.چه داسې اجازت د مزدورو ( او د ګټې) ملك ثابتولو فائده نه ورکوی. وَهُوَ الْمَقْصُودُ حالانکه هم دا مقصود دې. لِأَنَّهَا تَثْبُتُ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْأَدَاءِ مِنْهَا خکه چې کتابت ثابتيږی.په مزدورو سره د ادا کاوه د اړتيا په وجه. وَلَا حَاجَةَ فِيمَا إِذَا كَانَ الْبَدَلُ عَيْنًا مُعَيَّنًا،او کله چې عوض معين مال وی. نو ددې اړتيا نشته. وَالْمَسْأَلَةُ فِيهِ عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ او مسئله هم په دې صورت کي ده.لکه څنګه چې موږ بيان کړل.

**تشريح:** او ابن سماعه رحمه الله په واسطهٔ سره د امام ابويوسف او امام ابوحنيفه رحمهما الله نه روايت کړې دې،چه عقد به جائز نه وی.( اګرچه مالك اجازت ورکړی ).د عدم اجازت په حالت باندې قياس کولوسره.يعنی لکه څنګه چې د مالك د اړخه د عدم اجازت په وخت جائز نه دې.لکه څنګه په جامع صغير کتاب کي ذکر دی. «ر كذالك إن كاتبه على شيء بعينه لغيره لم يجز» دغه ډول به اجازت سره هم نه جائز کيږی.او په دې دواړو صورتونو کي امرجامع او وجه مشترك داده.چه په داسې قسمه اجازت حاصلولو کي عقد کتابت سره د مکاسب ( مزدورو) ملکيت نه ثابتيږی.حالانکه د کتابت نه مقصود فی الحال هم دا وی.چه مزدوری حاصله کړی.وجه داده.چه د مکاسب ( د مزدورو) د ملك ثبوت خکه کيږی.چه ددې په ذريعه د بدل کتابت اداکول ضروری دی.او کله چې بدل کتابت څه معين مال وی.نو ددې اړتيا هم نه پاتې کيږی.او مسئله په دې صورت کي بيان شوې ده.کله چې بدل کتابت معين مال وی.

وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ اود امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ يَجُوزُ أَجَازَ ذٰلِكَ چې عقد جائز دې.که مالك اجازت ورکړی. أَوْ لَمْ يُجِزْ، غَيْرَ أَنَّهُ عِنْدَ الْإِجَازَةِ يَجِبُ تَسْلِيمُ عَيْنِهِ،اوکه ورنکړی.صرف دومره خبره ده.چه د اجازت په صورت کي به بعينه هم د دغه شئ سپارل لازمی وی. وَعِنْدَ عَدَمِهَا يَجِبُ تَسْلِيمُ قِيمَتِهِ كَمَا فِي النِّكَاحِ،اود عدم اجازت په



صورت کي به ددې قيمت سپارل لازم وی.لکه څنګه چې نکاح کي کيږی. وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا صِحَّةُ التَّسْمِيَةِ لِكَوْنِهِ مَالًا، او امر جامع په دې دواړو کي د تسميه صحيح کيدل دی.ددې د مال کيدلو په وجه.

**تشريح:** اود امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې،چه عقد مذکور جائز دې،که ددې شئ مالك اجازت ورکړی،اوکه ورنکړی،صرف دومره خبره ده.که ده اجازت ورکړو.نو بعينه هم د دغه شئ سپارل به لازم وی.اوکه اجازت ورنکړو.نو ددې قيمت سپارل به لازم نه وی.لکه څنګه چې نکاح کي کيږی.او په نکاح باندې د قياس وجه داده.چه دلته کي کوم شئ عوض بيان کړې شوې دې.د هغې تسميهٔ صحيح ده.خکه چې دا هم مال دې،نو لکه څنګه چې په باب د نکاح کي کله مهر مسمی صحيح شی.اوبه دغه حالت کي دا د غير مال وی،او دغه غيرسړې اجازت ورکړی.نو عين مسمی ورکولې شی.اوکه هغه اجازت ورنکړی.نو د هغې قيمت ورکولې شی.دغه ډول به دلته کي هم وی.

وَلَوْ مَلَكَ الْمُكَاتَبُ ذٰلِكَ الْعَيْنَ،او که مکاتب ددې مال عين مالك شو. فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَوَاهُ أَبُو يُوسُفَ نود امام ابوحنيفه رحمه الله نه امام ابويوسف رحمه الله روايت کړې دې. أَنَّهُ إِذَا أَدَّاهُ لَا يَعْتِقُ، چې دده په آزادولو سره به نه آزاديږی. وَعَلٰى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ لَمْ يَنْعَقِدِ الْعَقْدُ إِلَّا إِذَا قَالَ لَهُ إِذَا أَدَّيْتَ إِلَيَّ فَأَنْتَ حُرٌّ په دې روايت باندې به عقد نه منعقد کيږی،خو هغه وخت کله چې آقا دا ونيلی وی. «إذا أديت إلي فانت حر» فَحِينَئِذٍ يَعْتِقُ بِحُكْمِ الشَّرْطِ،نو په دې صورت کي به د شرط موافق آزاديږی. وَهٰكَذَا عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ او هم دغه ډول پخپله د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.

**تشريح:** اوکه ددې شئ مالك اجازت ورنکړو،خو مکاتب په يوه ذريعه ددې مال عين الك شو.نو امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله نه روايت کړې دې،که مکاتب دا مال عين اداکړو.نو هغه به نه آزاديږی.هم دا ظاهرالرواية دې.ددې روايت موافق به عقد مذکور هغه وخت منعقد کيږی.کله چې ده ته آقا داسې ونيلی وی. «إذا اديت إلى فانت حر» چې په دې صورت کي د مال ادا کاوه په وخت مکاتب د شرط په حکم سره آزاديږی.او پخپله د امام ابويوسف رحمه الله نه هم داسې قول نقل دې.کوم چې ددوی نه د حسن بن ابی مالك روايت دی.د امام زفر رحمه الله قول هم ددې پشان دی.

وَعَنْهُ أَنَّهُ يَعْتِقُ او ددوی نه دا روايت هم دې،چه آزاديږی. قَالَ ذٰلِكَ أَوْ لَمْ يَقُلْ،که آقا دا اووائی،اوکه اونه وائی. لِأَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ مَعَ الْفَسَادِ لِكَوْنِ الْمُسَمّٰى مَالًا خکه چې دا عقد به فساد سره منعقد کيږی.د مسمی د مال کيدلو په وجه. فَيَعْتِقُ بِأَدَاءِ الْمَشْرُوطِ نود مال مشروط په ادا کاوه به آزاديږی.

**تشريح:** اود امام ابويوسف رحمه الله نه دوهم روايت کوم چې د اصحابو د املاء دې. دادې،چه مکاتب آزاديږی.که آقا «إذا اديت إلى فانت حر» ونيلی وی.او که نه وی ونيلی.خکه چې دا عقد فاسد منعقد کيږی.خکه چې کوم شئ مسمی دې.هغه مال دې.نو په مال مشروط اداکاوه باندې به آزاديږی.لکه که کتابت په شرابو وی.او هغه شراب اداکړی.نو آزاديږی.

وَلَوْ كَاتَبَهُ عَلٰى عَيْنٍ فِي يَدِ الْمُكَاتَبِ اوکه په داسې معين مال باندې ئې کتابت اوکړو.کوم چې د مکاتب په قبضه کي دې. فَفِيهِ رِوَايَتَانِ،نو په دې کي دوې (دوه) روايتونه دی. وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْكِتَابَةِ عَلَى الْأَعْيَانِ،او هم دا د کتاب علی الاعيان مسئله ده. وَقَدْ عُرِفَ ذٰلِكَ فِي الْأَصْلِ،کوم چې په اصل يعنی مبسوط کي معروف ده،. وَقَدْ ذَكَرْنَا وَجْهَ الرِّوَايَتَيْنِ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او موږ د دواړو روايتونو وجه په کفاية المنتهی کي ذکرکړې ده.

**تشريح:** که آقا غلام په داسې معين مال باندې مکاتب کړو.کوم چې دده په قبضه کي دې.يعنی هغه دده مزدوری ( اوګټه) ده. «وبان كان ماذوناً فى التجارة» نو په دې اړه کي دوې (دوه) روايتونه دی. د اصل يعنی د مبسوط د کتاب الشرب روايت دادې،چه عقد جائز دې،اود کتاب المكاتب روايت دا دې،چه جائز نه دې.علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی،چه په مال معين باندې مکاتب کول، د کتابت علی الاعيان مسئله

ده.كوم چې په اصل يعنى مبسوط كي معروف ده.اود دواړو روايتونو وجه موږ په كفاية المنتهى كي ذكركړي ده.

## د غير معين غلام وركولو په شرط په سل ديناره د مكاتب جوړولو حكم

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَهُ عَلَى مِائَةِ دِينَارٍ عَلَى أَنْ يَرُدَّ الْمَوْلَى عَلَيْهِ عَبْدًا بِغَيْرِ عَيْنِهِ) كه مكاتب ئې كړو.دا ( غلام) په سل اشرفو باندې، په دې شرط چې آقا به ده ته يو غيرمعين غلام واپس وركوى. فَالْكِتَابَةُ فَاسِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ() نو عقد كتابت فاسد دې.د طرفينو رحمهما الله په نيز. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ:او امام ابويوسف رحمه الله فرمائى. هِيَ جَائِزَةٌ، چې دا كتابت جائز دې. وَيُقْسَمُ الْمِائَةُ الدِّينَارِ عَلَى قِيمَةِ الْمُكَاتَبِ وَعَلَى قِيمَةِ عَبْدٍ وَسَطٍ او سل اشرفئ به د كتابت په قيمت، او د منځنى درجې غلام په قيمت باندې تقسيمولې شى. فَيَبْطُلُ مِنْهَا حِصَّةُ الْعَبْدِ نو په سل اشرفو كي به د غلام برخه مستثنى كولې شى. فَيَكُونُ مُكَاتَبًا بِمَا بَقِيَ او د پاته په عوض به مكاتب وى. لِأَنَّ الْعَبْدَ الْمُطْلَقَ يَصْلُحُ بَدَلَ الْكِتَابَةِ ځكه چې مطلق غلام د بدل كتابت كيدلو لائق وى. وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَسَطِ، او اوسط درجې غلام اړخ ته منصرف كيږى. فَكَذَا يَصْلُحُ مُسْتَثْنًى مِنْهُ نو هم دغه ډول دا غلام مستثنى كيداې هم شى.

**تشريح:** كه آقا خپل غلام د سل دينارو په عوض په دې شرط مكاتب كړو.چه آقا به ده ته يو غير معين غلام واپس كوى.نود طرفينو رحمهما الله په نيز دا هم فاسد دى.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز صحيح دى.ځكه چې عبد مطلق د كتابت صلاحيت لرى.نو دلته به منځنى ډول غلام مراد وى.او سل دينار به د مكاتب او منځنى ډول غلام په قيمت باندې تقسيمولې شى.نود منځنى درجې د غلام د قيمت برخه به ساقطولې شى.اود پاته په عوض به دې مكاتب وى.فرض كړه.چه د مكاتب غلام قيمت شپږ سوه، او د منځنى درجې د غلام قيمت څلور سوه دې.نو سل چې په دې دواړو باندې ويش شى.نو د منځنى غلام په مقابله كي څلويښت راځى.نو دا به اوخكلې شى.اود شپيتو په عوض به غلام مكاتب وى.

وَهُوَ الْأَصْلُ فِي أَبْدَالِ الْعُقُودِ. اود عقدونو په معاوضاتو كي هم دا اصل

**تشريح:** په كومه معامله كي چې د دواړو اړخه مالى معاوضه وى.هغې ته عقود وائى.لكه بيع وغيره.او په كوم كي چې د يو اړخه د خپل حق اسقاط وى.او د دوهم اړخه مال وى.يا نه وى.هغې ته فسوخ وائى.لكه طلاق او خلع وغيره.نو كتابت عقد معاوضه ده.ګويا د غلام نه ئې مال واخستلو.او دده رقبه ئې ده ته وركړو.اګرچه هغه د رقبه مالك نشو.

وَلَهُمَا د طرفينو رحمهما الله دليل دې. أَنَّهُ لَا يُسْتَثْنَى الْعَبْدُ مِنَ الدَّنَانِيرِ، چې د اشرفو نه د غلام استثناء نشى كيدې. وَإِنَّمَا تُسْتَثْنَى قِيمَتُهُ بلكه دده د قيمت استثناء كيداې شى. وَالْقِيمَةُ لَا تَصْلُحُ بَدَلًا او قيمت د عوض كيدلو لائق نه دې. فَكَذَلِكَ مُسْتَثْنًى نو هغه مستثنى كيداې هم نشى.

**تشريح:** د طرفينو رحمهما الله دليل دادې.چه عبد مطلق د بدل كتابت كيدلو لائق دې.دا ټيك ده.خودا هلته كي كيداې شى.چرته چې استثناء صحيح وى.او دلته د دنانيرو نه د غلام استثناء ( د نفس عبد په لحاظ سره) د اختلاف جنس په وجه صحيح نه ده.بلكه استثناء دده د قيمت په اعتبار سره كيداې شى.او په قيمت كي د ډول ، مقدار او وصف په لحاظ سره د ډير زيات جهالت په وجه د بدل كتابت كيدلو صلاحيت نشته.نو هم دغه ډول به مستثنى كي هم ددې صلاحيت نه وى.

---

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى نتائج الأفكار(١٠٥\٨) والدرالمختار(٦٩\٥) ومجمع الأنهر(٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٣٩\٢)_



## په غير موصوف څاروى باندې د غلام مكاتب كولو حكم

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَهُ عَلَى حَيَوَانٍ غَيْرِ مَوْصُوفٍ) كه مكاتب ئې كړو غلام، په غيرموصوف حيوان باندې، (جَازَتْ) نو كتابت جائز دې.استحساناً ، مَعْنَاهُ أَنْ يُبَيِّنَ الْجِنْسَ او ددې مطلب دادې.چه جنس ئې بيان كړو. وَلَا يُبَيِّنَ النَّوْعَ وَالصِّفَةَ او وصف ئې بيان نكړو. (وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَسَطِ) ودا به اوسط درجې غلام اړخ ته منصرف وى. (وَيُجْبَرُ عَلَى قَبُولِ الْقِيمَةِ) او ددې د قيمت په قبلولو به مجبوروولې شى. وَقَدْ مَرَّ فِي النِّكَاحِ، او په نكاح كي تير شو. أَمَّا إِذَا لَمْ يُبَيِّنِ الْجِنْسَ او ده جنس بيان نكړو. مِثْلَ أَنْ يَقُولَ دَابَّةً مثلاً صرف سوارلئ ئې اووئيل لَا يَجُوزُ نو دا به جائز نه وى. لِأَنَّهُ يَشْمَلُ أَجْنَاسًا مُخْتَلِفَةً ځكه چې سوارلئ مختلف اجناسو ته ګډ ده. فَتَتَفَاحَشُ الْجَهَالَةُ نو جهالت به فاحش ( ډير زيات) وى. وَإِذَا بَيَّنَ الْجِنْسَ كَالْعَبْدِ وَالْوَصِيفِ او كله ئې چې جنس بيان كړو.لكه غلام يا خادم، فَالْجَهَالَةُ يَسِيرَةٌ نو جهالت خفيف ( معمولى ) دې. وَمِثْلُهَا يُتَحَمَّلُ فِي الْكِتَابَةِ او داسې جهالت په كتاب كي برداشت كيږى.

**تشريح:** كه غلام ئې د يو څاروى په عوض مكاتب كړو.او دهغې ئې صرف جنس بيان كړو.مثلاً دا چې اس، يا اوښ، يا غلام به وركول وى.او نوع او وصف ئې بيان نكړو.چه غلام به مثلاً تركى وى.يا هندى وى.اعلى به وى.او كه ادنى به وى.نو خالى د جنس په معلوميدلو سره به عقد كتابت صحيح وى.د امام مالك رحمه الله قول هم دادې.اوس به دا منځنى درجې حيوان اړخ ته واپس كولې شى.او مكاتب چې ددې قيمت وركوى.نو آقا به ددې په اخستلو باندې مجبوره كولې شى.خو كه جنس ئې بيان نكړو.مثلاً وې وئيل. ﴿كاتبتك على دابة﴾ نودا به جائز نه وى.ځكه چې په دې كي مختلف اجناس ګډ دى.نوجهالت به سخت وى. ددې په خلاف كه جنس ئې بيان كړو.مثلاً غلام يا خادم ئې اووئيل.نو دا ځكه صحيح دې.چه دا جهالت معمولى دې.ځكه چې دا وصف اړخ ته واپس كيږى.ذات اړخ ته نه واپس كيږى.او داسې معمولى جهالت په كتابت كي برداشت كولې شى.

فَتُعْتَبَرُ جَهَالَةُ الْبَدَلِ بِجَهَالَةِ الْأَجَلِ فِيهِ. نو جهالت د بدل به په جهالت د اجل باندې قياس كولې شى.

**تشريح:** د بدل كتابت د خفيف جهالت قياس د ميعاد ( مودې) په مجهول كيدلو باندې دې.كه د بدل د اداء موده مجهوله وى. ﴿بأن قال كاتبتك إلى الحصاد﴾ نو عقد كتابت صحيح كيږى.په دې لړ وضاحت سره داسې پوهه شئ:چه كتابت په دې لحاظ چې دا معاوضه مال بلا مال ده.د نكاح مشابه ده.او په دې لحاظ چې معاوضه مال بالمال ده.د بيع مشابه ده.نو كه جنس مجهول وى.جائز به نه وى.او كه نوع او وصف مجهول وى.نو دا جهالت چونكه معمولى دې.په دې وجه دنكاح په شان كتابت كي هم برداشت كولې شى.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: امام شافعى رحمه الله فرمائى. لَا يَجُوزُ، چې جائز نه دى. وَهُوَ الْقِيَاسُ او قياس هم دادې. لِأَنَّهُ مُعَاوَضَةٌ ځكه چې كتابت عقد معاوضه ده. فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ. نود بيع مشابه شو.

**تشريح:** د امام شافعى او امام احمد رحمهما الله په نيز به معمولى جهالت سره هم كتابت جائز نه وى.قياس هم دادې.ځكه چې كتابت د معاوضه مال بالمال كيدلو په وجه يو عقد معاوضه ده.نود بيع مشابه شوه.اود بدل يا ميعاد مجهول كيدلو په صورت كي بيع نه صحيح كيږى.نو كتابت به هم صحيح نه وى.

وَلَنَا زموږ دليل دادې. أَنَّهُ مُعَاوَضَةُ مَالٍ بِغَيْرِ مَالٍ چې معاوضه مال بغير مال ده. أَوْ بِمَالٍ يا معاوضه مال بالمال ده. لَكِنْ عَلَى وَجْهٍ يَسْقُطُ الْمِلْكُ فِيهِ خو په داسې طريقه چې په دې كي ملك ساقطيږى. فَأَشْبَهَ النِّكَاحَ، نود نكاح مشابه شو.

**تشريح:** زموږ دليل دادې.چه كتابت، معاوضه مال بلا مال ده.ځكه چې بدل كتابت په ابتداء كي د فك حجر( منع لرې كولو) په مقابله كي وى.او فك حجر مال نه دې.يا كتابت، معاوضه مال بالمال دې.ځكه چې بدل

کتابت په انجام کي د رقبه په مقابله کي وي.خودا په داسي طور دی.چه په دې کي ملکيت اقا لپاره ساقطيږي.ځکه چي غلام د خپل ذات د ماليت نه مالك کيږي.نودا د نکاح مشابه شو.چه منافع د بضع د دخول په وخت مال دي.نودا هم معاوضه مال بالمال شوه.او شريعت منافع د اعيانو په درجه کي ايخودي دي.خو مال ګيدل په داسي طريقه دی.چه ملك زوج لپاره ساقطيږي.

وَالْجَامِعُ أَنَّهُ يَنْبَنِي عَلَى الْمُسَامَحَةِ او امرجامع دادې.چه دا په مسامحت مبنی ده. بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ مَبْنِيٌّ عَلَى الْمُمَاكَسَةِ په خلاف د بيع.چه دا په سختئ او تنګئ باندې دي.

**تشريح:** او په کتابت او نکاح کي جامع په دواړو کي نرمی مقصود وی. په خلاف د بيع، چې دا په سختئ او تنګئ باندې مبنی ده.نو کتابت په بيع باندې قياس کول صحيح نه دی

### د غيرمسلمه خپل غلام په شرابو باندې د مکاتب کولو حکم

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَ النَّصْرَانِيُّ عَبْدَهُ عَلَى خَمْرٍ) که مکاتب کړو نصرانی خپل غلام، په شرابو باندې. (فَهُوَ جَائِزٌ) نو دا جائز دی.

**تشريح:** که يو نصرانی خپل غلام په شرابو باندې مکاتب کړو.نو دا جائز دی.په دې شرط چې د شرابو مقدار معلوم وی.ځکه چې جهالت د بدل مانع د جواز وی.او دا چې غلام کافر وی.که مسلمان وی.نو کتابت به جائز نه وی.خو ددې باوجود که ده شراب اداکړل.نو آزديږی.ځکه چې کتابت د ذکر شوی بدل په ادا کاوه سره د عتق تعليق ته متضمن دي.نودا داسې شوه.لکه چې يو مسلمان خپل مسلمان غلام په شرابو باندې مکاتب کړو.او مکاتب شراب اداکړل.نو هغه آزاديږی.قاضی ظهيرالدين، رازی ،نجم الدين افطی ، او نيشاپوری وغيره مشانخو هم داسې ذکر کړی دی.البته په شرح طحاوی او تمرتاشی کي دی.چه نه آزاديږی.

مَعْنَاهُ ددې معنی داده. إِذَا كَانَ مِقْدَارًا مَعْلُومًا وَالْعَبْدُ كَافِرًا چې د شرابو مقدار معلوم، او غلام کافر وی.

**تشريح:** دا دواړه شرطونه د جامع صغير په عبارت کي صراحت سره موجود دی.خو علامه مرغينانی رحمه الله د جامع عبارت بعينه نه دی ذکرکړی.په دې وجه دواړو شرطونو باندې د خبرولو اړتيا راپيښه شو.

لِأَنَّهَا مَالٌ فِي حَقِّهِمْ بِمَنْزِلَةِ الْخَلِّ فِي حَقِّنَا ځکه چې شراب ددوی په حق کي مال دي.لکه سرکه زموږ په حق کي. (وَأَيُّهُمَا أَسْلَمَ) او په دوی کي چې کوم کس مسلمان شی. (فَلِلْمَوْلَى قِيمَةُ الْخَمْرِ) نود آقا لپاره به د شرابو قيمت وی. لِأَنَّ الْمُسْلِمَ مَمْنُوعٌ عَنْ تَمْلِيكِ الْخَمْرِ وَتَمَلُّكِهَا،ځکه چې مسلمان د شرابو د تمليك او تملك ( د مالك جوړولو او مالك کيدلو) نه منع کړې شوي دي. وَفِي التَّسْلِيمِ ذَلِكَ او په سپارلو کي دا خبره موجود ده. إِذِ الْخَمْرُ غَيْرُ مُعَيَّنٍ ځکه چې شراب متعين نه دی. فَيَعْجِزُ عَنْ تَسْلِيمِ الْبَدَلِ نود عوض حواله کاوه څخه به عاجز وی. فَيَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَتُهَا، نو په ده به قيمت واجب وی. وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا تَبَايَعَ الذِّمِّيَّانِ خَمْرًا او دا ددې خلاف دی. کله چې دوې (دوه) ذميانو د شرابو اخستل خرڅول اوکړل. ثُمَّ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا بيا په دوی کي يوکس مسلمان شو. حَيْثُ يَفْسُدُ الْبَيْعُ عَلَى مَا قَالَهُ الْبَعْضُ چې د بعضو په قول بيع فاسديږی. لِأَنَّ الْقِيمَةَ تَصْلُحُ بَدَلًا فِي الْكِتَابَةِ فِي الْجُمْلَةِ، ځکه چې کتابت کي قيمت فی الجمله عوض کيداې شی. فَإِنَّهُ لَوْ كَاتَبَ عَلَى وَصِيفٍ لکه که غلام ئې په خدمتی وينځې باندې مکاتب کړو. وَأَتَى بِالْقِيمَةِ او مکاتب ددې قيمت راوړلو. يُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ نو آقا به ددې په اخستلو باندې مجبوروليې شی. فَجَازَ أَنْ يَبْقَى الْعَقْدُ عَلَى الْقِيمَةِ، نو جائز دی. چې عقد په قيمت باندې پاته پاتې شی. فَأَمَّا الْبَيْعُ پاتې شوه بيع، فَلَا يَنْعَقِدُ صَحِيحًا عَلَى الْقِيمَةِ نو هغه قيمت باندې صحيح نه منعقد کيږی. فَافْتَرَقَا. نو په دواړو کي توپير اوشو. قَالَ (وَإِذَا قَبَضَهَا) وکله چې په شرابو باندې قبضه اوکړله. (عَتَقَ) نو غلام به آزاديږی. لِأَنَّ فِي الْكِتَابَةِ مَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ. ځکه چې کتابت کي د معاوضه معنی ده. فَإِذَا وَصَلَ أَحَدُ الْعِوَضَيْنِ إِلَى الْمَوْلَى نو هرکله چې يو عوض آقا ته اورسيدلو. سَلِمَ الْعِوَضُ الْآخَرُ لِلْعَبْدِ نو دوهم عوض به غلام لپاره منلې کيږی. وَذَلِكَ بِالْعِتْقِ،



اودا به په آزادولو سره کيږی. بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْعَبْدُ مُسْلِمًا حَيْثُ لَمْ تَجُزِ الْكِتَابَةُ په خلاف ددې کله چې غلام مسلمان وی.چه کتابت به جائز نه وی. لِأَنَّ الْمُسْلِمَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الْتِزَامِ الْخَمْرِ،ځکه چې مسلمان د شرابو د التزام د اهل څخې نه دي. وَلَوْ أَدَّاهَا او که ده شراب اداکړل. عَتَقَ نو آزاديږی به. وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ. وَاللَّهُ أَعْلَمُ

**تشريح:** د مذکوره کتابت د جواز وجه داده.چه شراب ددې خلګو په حق کي داسې مال دي.لکه څنګه چې زموږ په حق کي سرکه مال دي.بيا په آقا او مکاتب کي چې کوم يو کس مسلمان شی.نو په هرحال کي به آقا ته د شرابو قيمت ملاويږی.(د امام شافعی او امام مالك رحمهما الله په روايت کي ،اود امام احمد او امام محمد رحمهما الله په نيز به کتابت فاسد وی.ځکه چې مسلمان ته د شرابو د تمليك او تملك ( د مالك جوړولو او مالك کيدلو) نه منع کړې شوې دي.او په شرابو سپارلو کي هم دا لازميږی.يعنی که مکاتب مسلمان وی.نو تمليك،اوکه آقا مسلمان وی.نو تملك لازميږی.ځکه چې مسئله کي هم دا صورت بيان کړې شوې دې.چه شراب غيرمعين دی.نو په دې کي به ملك په نفس عقد سره نه ثابتيږی.بلکه سپارلو سره به ثابتيږی.( په خلاف ددې چې شراب معين وی.چه په دې کي نفس عقد سره ملك ثابتيږی.او اوس شراب سپارل به د يوې قبضې نه بلې قبضې اړخ ته منتقل کول وی.او مسلمان لپاره نقل د يد ممنوع دې).بهرحال هرکله چې مسلمان لپاره شراب سپارل ممنوع شو.نو هغه د بدل کتابت کاوه نه عاجز شو.نو ددې قيمت به واجب وی.

## باب ما يجوز للمكاتب أن يفعله

ژباړه: ( دا) باب د هغه ( احکامو په بيان کي ) دې.کوم چې کول مکاتب لپاره جائز دی.

**تشريح:** په عنايه او بنايه کي دی.چه د کتابت صحيحه او فاسده د دواړو د احکام نه د فراغت نه روسته دا خبرې بيانوی.کوم چې مکاتب لپاره جائز يا نا جائز دی.ځکه چې د تصرف جواز په عقد صحيح باندې موقوف دې.صاحب د نتائج رحمه الله فرمائی.چه دا تعليل ددې مقتضی نه دې.چه دا باب د کتابت فاسده د احکامو نه روسته ذکرکړې شی.بلکه دا خو ددې د تقديم تقاضه کوی.،،فلا يتم التقريب،،

### مکاتب لپاره د بيع، شراء، اود سفر اجازت

قَالَ (وَيَجُوزُ لِلْمُكَاتَبِ الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ وَالسَّفَرُ) جائز دی مکاتب لپاره اخستل، خرڅول، او سفر. لِأَنَّ مُوجَبَ الْكِتَابَةِ أَنْ يَصِيرَ حُرًّا يَدًا، ځکه چې د کتابت تقاضه داده.چه هغه د قبضې نه آزاد وی. وَذَلِكَ بِمَالِكِيَّةِ التَّصَرُّفِ مُسْتَبِدًّا بِهِ تَصَرُّفًا يُوَصِّلُهُ إِلَى مَقْصُودِهِ او دا خبره به مستقله د داسې تصرف په مالك کيدلو سره وی.کوم چې دې دده مقصود ته اورسوی وَهُوَ نَيْلُ الْحُرِّيَّةِ بِأَدَاءِ الْبَدَلِ، وَالْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ مِنْ هَذَا الْقَبِيلِ،او هغه د عوض ادا کاوه په ذريعه آزادی حاصلول دی.او اخستل، خرڅول هم ددې قبيلې څخې دی. وَكَذَا السَّفَرُ او هم دغه ډول سفر هم دې. لِأَنَّ التِّجَارَةَ رُبَّمَا لَا تَتَّفِقُ فِي الْحَضَرِ ځکه چې ډير ځله خپل مقام کي تجارت ممکن نه وی. فَيَحْتَاجُ إِلَى الْمُسَافَرَةِ، نود اړتيا سفر راپيښيږی

**تشريح:** مکاتب لپاره اخستل، خرڅول،او سفر کول جائز دی.ځکه چې د کتابت د لوازماتو څخې دادی.چه غلام د تصرف په لحاظ سره آزاديږی.اودا هغه وخت کيداې شی.کله چې دې مستقل طور باندې د هر داسې تصرف مالك وی.چه د هغې په ذريعه خپل مقصود ته اورسيږی.يعنی بدل کتابت اداکړی.او آزاد شی.او اخستل خرڅول کول، او سفر کول هم ددې قبيلې څخې دی.په دې وجه به دا کارونه دده لپاره جائز وی.په يو قول کي امام مالك او امام شافعی رحمهما الله ددې خلاف دی.

وَيَمْلِكُ الْبَيْعَ بِالْمُحَابَاةِ او هغه په تاوان سره د خرڅولو مالك هم دې. لِأَنَّهُ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ،ځکه چې دا د تجارت د قبيلې څخې دې. فَإِنَّ التَّاجِرَ قَدْ يُحَابِي فِي صَفْقَةٍ ځکه چې تاجر کله کله په يو بيع کي تاوان اوچتوی. لِيَرْبَحَ فِي أُخْرَى چې په بله بيع کي نفع حاصله کړی.

**تشريح:** مکاتب ته دا اختيار هم دې.چه شی په تاوان خرڅ کړی.مثلاً د سلو شی په لس کم سل خرڅ کړی.د آئمه

ثلاثه رحمهم الله په نیز ده ته ددې اجازت نشته.ځکه چې دا د عتق او هبة پشان يو ډول احسان دی.زموږ دليل دادې.چه دا بيع بالمحاباة ( په کم قيمت د خرڅولو) ځنې ده.چه سوداګر خلګ کله کله په يو بيع کې تاوان برداشت کوي.چه په بله بيع کې نفع حاصله کړي.بيا دلته کې د احنافو رحمهم الله هيڅ اختلاف ذکر نه دی.البته په شرح طحاوي کې دی.چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز مکاتب لپاره بيع جائز نه ده.مګر په معروف طريقه، اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چې ځنګه هم وي.جائز ده.د ابو الحسين قدوري رحمه الله په تقريب کې دی.امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.چه د مکاتب هر بيع جائز ده.که په قليل عوض وي.او په کثير عوض وي. «و قالا بما لا يتغابن فی مثله»

قَالَ (فَإِنْ شَرَطَ عَلَيْهِ أَنْ لَا يَخْرُجَ مِنَ الْكُوفَةِ)بيا که آقا په ده باندې دا شرط اولګولو.چه د کوفې ځخه به بهر نه اوځي. فَلَهُ أَنْ يَخْرُجَ اسْتِحْسَانًا)بيا هم دې استحساناً بهر ته تلې شي. لِأَنَّ هٰذَا الشَّرْطَ مُخَالِفٌ لِمُقْتَضَى الْعَقْدِ ځکه چې دا شرط د عقد د تقاضې نه خلاف دې. وَهُوَ مَالِكِيَّةُ الْيَدِ مِنْ جِهَةِ الِاسْتِبْدَادِ وَثُبُوتِ الِاخْتِصَاصِ او هغه په طريقه استقلال د قبضې مالك کېدل، او اختصاص ثابتيدل دی. فَبَطَلَ الشَّرْطُ نو شرط به باطل وي. وَصَحَّ الْعَقْدُ او عقد به صحيح وي.

**تشريح:** که آقا د سفر نه کاوه شرط اوکړو.بيا هم هغه سفر کولې شي.ځکه چې دا د عقد د مقتضاء يعنی د تصرف خلاف دی.ځکه به شرط باطل وي.او عقد به صحيح وي.په يو قول کې امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.او ددوی په دوهم قول کې د شرط نه بغير هم سفر کې تلل جائز نه دی.نو د شرط کاوه په صورت کې به په طريقة اولى جائز نه وي.

لِأَنَّهُ شَرْطٌ ځکه دا داسې شرط دې. لَمْ يَتَمَكَّنْ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ، چې دا په صلب د عقد کې نه متمکن کيږي. وَبِمِثْلِهِ لَا تَفْسُدُ الْكِتَابَةُ، او په داسې شرط سره کتابت نه فاسديږي.

**تشريح:** زموږ دليل دادې.چه په شرط فاسد سره کتابت هغه وخت باطليږي.کله چې دا عقد په صاحب عقد کې متمکن وي.په دې طريقه چې هغه عوضينو کې په يو( بدل يا مبدل) کې داخل وي.لکه بدل مجهول، يا بدل حرام باندې ئې مکاتب کړو.يا ئې خپله وينځه په زرو( درهمو) باندې مکاتبه کړله.او دا شرط ئې اوکړو.چه ترکومه پورې دا مکاتبه وي.ددې سره به وطې کوي.يا وينځه د غير نه حامله وه.د هغې د حمل استثناء ئې اوکړله.يا ئې غلام په خدمت مکاتب کړو.اود خدمت ئې هيڅ وخت بيان نکړو.او دلته کې داسې شرط نشته.ځکه چې دا نه په بدل کتابت کې داخل دې.او نه ددې په مقابل کې.او په داسې شرط سره کتابت نه باطليږي. «كما إذا كاتب عبده على أن لا يخرج من المصر أو على أن لا يتجر»

وَهٰذَا وَجْهُ ددې داده. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ تُشْبِهُ الْبَيْعَ چې کتابت د بيع مشابه وي. وَتُشْبِهُ النِّكَاحَ اود نکاح مشابه هم ده. فَأَلْحَقْنَاهُ بِالْبَيْعِ فِي شَرْطٍ تَمَكَّنَ فِي صُلْبِ الْعَقْدِ، كَمَا إِذَا شَرَطَ خِدْمَةً مَجْهُولَةً نو موږ دا بيع سره لاحق کړله.په داسې شرط کې کوم چې په صلب د عقد کې متمکن وي.لکه چې د مجهول خدمت شرط ئې اولګولو. لِأَنَّهُ فِي الْبَدَلِ ځکه چې دا په بدل کې دننه داخل دې. وَبِالنِّكَاحِ فِي شَرْطٍ لَمْ يَتَمَكَّنْ فِي صُلْبِهِ او نکاح سره ئې لاحق کړو.په داسې شرط کې.کوم چې په صلب د عقد کې متمکن نه وي. هٰذَا هُوَ الْأَصْلُ بس هم دا اصل دې.

**تشريح:** کوم شرط چې په بنا (بنياد) د عقد کې متمکن وي.هغه عقد ماتوي.او کوم چې د عقد په بنا (بنياد) کې متمکن نه وي.هغه عقد ماتونکې نه وي.ددې تفصيل وجه داده.چه کتابت يو ډول له د بيع مشابه دې.او هغه داچه د بيع پشان کتابت هم معاوضه ده.د بيع پشان کتابت هم بلاعوض نه صحيح کيږي.د بدل کتابت ادا کاوه نه وړاندې وړاندې په دې کې هم د فسخ احتمال دې.او دويمه دا چې د عقد په مکمل کيدلو کې د نکاح مشابه دې.چه د نکاح پشان داهم معاوضه مال بغير مال ده.اود بدل ادا کاوه په ذريعه د عقد مکمل کيدلو نه پس، د نکاح پشان په دې کې د فسخ احتمال نه وي.نو په دې دواړو مشابهتونو باندې عمل کاوه



سره موږ اووئيل چه کوم عقد د عقد کتابت په بنا (بنياد) کې متمکن وي هغې کې خو عقد کتابت بيع سره ملاويږي.او په داسې شرط سره کتابت فاسديږي.لکه د مجهول خدمت شرط لګول.او کوم شرط چې د عقد په بنا (بنياد) کې متمکن نه وي.هغې کې عقد کتابت نکاح سره ملاويږي.او په داسې شرط سره عقد کتابت نه فاسديږي. «بان كاتبه على ألف إلى الحصاد أو الدياس»

**اشکال:** علامه مرغيناني رحمه الله په قول «تشبه البيع و تشبه النكاح» باندې ددې وئيلو ګنجائش شته.چه په غيرموصف خاروي باندې د کتابت د جواز په مسئله کې وړاندې دا خبره تيره شوې ده.چه زموږ امامانو د مشابهت بالنکاح قول کړې دې.او هم په دې ئې عمل کړې دې او امام شافعي رحمه الله چې کوم د مشابهت بالبيع قول کړې دې.زموږ امامانو ددې ترديد کړې دې.هرکله چې دا خبره ده.نو بيا احنافو لپاره دلته په مشابه بالبيع باندې عمل کول ځنګه صحيح شو؟

**جواب:** دادې.چه په کوم صورت کې دوې (دوه) مشابهتونو باندې عمل ممکن وي.هغې کې په دواړو باندې عمل کول ددې منافی نه دی.چه کوم ځائې کې په دواړو باندې عمل ممکن نه وي.هلته صرف يو باندې عمل اوکړې شي.

أَوْ نَقُولُ:يا موږ وايو. إِنَّ الْكِتَابَةَ فِي جَانِبِ الْعَبْدِ إِعْتَاقٌ چې کتابت په اړخ د عقد کې اعتاق دې

**تشريح:** د شرط د بطلان او د کتابت د صحت دوهم دليل دادې.چه د غلام په اړخ کې کتابت د اعتاق ( آزادئ) مشابه دې.ځکه چې اعتاق ، ،ازاله د ملك لا الى واحد ، ،ته وائي.او په کتابت کې هم اسقاط د ملك دې.ځکه چې په دې کې د مکاتب په برخه کې هيڅ نه راځي.صرف دا کيږي. چې په دې سره د آقا ملك ساقطيږي.او شرط مذکور يعنی د کوفه نه بهر نه تلل، غلام سره مخصوص يعنی دده سره متعلق دې.اوهر هغه شرط کوم چې د غلام د اړخه خاص وي.نو اعتاق کې داخل وي.نو مذکوره شرط هم اعتاق کې داخل شو.په دې وجه ددې شرط په حق کې کتابت اعتاق اوشمارلې شو.داسې نه چې معاوضه.او اعتاق په شروط فاسده سره نه باطليږي.لکه که يوکس غلام په دې شرط آزاد کړو.چه دې به سائبه ( يعنی د آزادئ نه روسته به د هيڅ چا په ولاء کې نه وي.بلکه پخپل اختيار کې به) وي.نو دا شرط به باطل وي.او اعتاق به صحيح وي.

لِأَنَّهُ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ، ځکه چې دا اسقاط د ملك دې. وَهٰذَا الشَّرْطُ يَخُصُّ الْعَبْدَ او دا شرط غلام سره خاص دې. فَاعْتُبِرَ إِعْتَاقًا فِي حَقِّ هٰذَا الشَّرْطِ، نو ددې شرط په حق کې کتابت باندې د اعتاق اعتبار اوکړې شو. وَالْإِعْتَاقُ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ او اعتاق په شروط فاسده سره نه باطليږي.

**تشريح:** د اعتاق د ملك اسقاط کيدل زموږ د عالمانو د تصريح خلاف دی.چه اعتاق د فرعی قوت د اثبات نوم دې.او هم په دې دوی دا خبره متفرع کړې ده.چه اجنبی باندې د بدل عتق شرط کول جائز نه دی.که اعتاق د ملك اسقاط وې.نو شرط به جائز وو.ځکه داسې شرائط کوم چې ساقطونکی وي.هغې کې اجنبی باندې د بدل شرط جائز دې.البته داسې شرائط چې هغه څه شئ ثابتونکی وي.هغې کې جائز نه دی.

### مکاتب لپاره د کومو ضروریاتو پوره کولو اجازت دې ؟

قَالَ (وَلَا يَتَزَوَّجُ إِلَّا بِإِذْنِ الْمَوْلَى) و نکاح به نه کوي.مګر د آقا په اجازت سره. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ فَكُّ الْحَجْرِ مَعَ قِيَامِ الْمِلْكِ ضَرُورَةَ التَّوَسُّلِ إِلَى الْمَقْصُودِ، ځکه چې کتابت د تصرف ممانعت ماتونکې دې.د ملك قيام سره مقصوده پورې د رسيدلو په اړتيا سره. وَالتَّزَوُّجُ لَيْسَ وَسِيلَةً إِلَيْهِ، او نکاح کول ددې وسيله نه ده. وَيَجُوزُ بِإِذْنِ الْمَوْلَى او په اجازت د آقا جائز دی. لِأَنَّ الْمِلْكَ لَهُ

**تشريح:** د احنافو او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز مکاتب ته د آقا د اجازت نه بغير د نکاح کاوه اختيار نشته.(ابن ابی ليلى فرمائي.که د آقا د اړخه د نکاح نه کاوه شرط وي بيا خو اختيار نشته.او که ددې شرط نه وي.نو د آقا د اجازت نه بغير هم کولې شي.ځکه د کتابت مطلب دادې.چه د آقا ملك قائميدو سره د تصرف ممانعت

مات کړي شي. چه هغه مقصود ته د رسيدلو وسيله وي. او نکاح کول ددې مقصد وسيله نه ده. بلکه په دې کي نورهم خلل اچول دي. ځکه چي هغه به په نکاح کاوه د مهر په ادا کاوه او د نان نفقة په چکر کي پريوځي. او د آقا په اجازت د نکاح اختيار ځکه دې چه په ده کي د آقا ملك قائم دي.

(وَلَا يَهَبُ وَلَا يَتَصَدَّقُ إِلَّا بِالشَّيْءِ الْيَسِيرِ) ونه به هبه کوي. او نه به صدقه ورکوي. خود معمولي (آرزان) څيز. لِأَنَّ الْهِبَةَ وَالصَّدَقَةَ تَبَرُّعٌ ځکه چي هبه او صدقه احسان دې. وَهُوَ غَيْرُ مَالِكٍ لِيُمَلِّكَهُ، إِلَّا أَنَّ الشَّيْءَ الْيَسِيرَ مِنْ ضَرُورَاتِ التِّجَارَةِ او هغه ددې مالك نه دې. تردې چي بل څوك مالك جوړ کړي. خو معمولي شئ د تجارت د ضروورياتو څني دي.

تشريح: مكاتب ته د هبه او صدقه كاوه اختيار هم نشته. ځکه چي دا د تبرعاتو (احساناتو) د قبيلې څني دي. او مكاتب د تبرعاتو اجازت نشته. البته د معمولي معمولي څيزونو هبه كاوه اجازت دې. ځکه چي دا د تجارت د ضروورياتو څني دي. ځکه چي کله کله د معاملاتو د خلګو د ملستيا اړتيا راپيښيږي. کله کله د سوارلۍ وغيره څه شئ عاريت ور کاوه اړتيا راځي. چه سوداګرو سره د لين دين تعلقات قائم پاتي شي.

لِأَنَّهُ لَا يَجِدُ بُدًّا مِنْ ضِيَافَةٍ وَإِعَارَةٍ ځکه چي دده لپاره د ملستيا كاوه او عاريت بانديې د ور كاوه نه خلاصې نشته. لِيَجْتَمِعَ عَلَيْهِ الْمُجَاهِزُونَ. چي د تجارتي قافلي خلګ دده سره راجمع شي. وَمَنْ مَلَكَ شَيْئًا يَمْلِكُ مَا هُوَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ وَتَوَابِعِهِ او کوم سړي چي د کوم شئ مالك وي. هغه د هغې د ضروورياتو او متعلقاتو هم مالك وي.

تشريح: د عوامو په ژبه کي مجاهز توانګر سوداګر ته وائي. دلته کي ددې نه مراد مجهز دې. چه تاجران په قسم قسم قيمتي مالونو سره روان کړي. نو ددې تحريف شوې دې. او مجاهز جوړ شوې دې. (مغرب)

### د مكاتب د هبه او صدقه كولو حكم

(وَلَا يَتَكَفَّلُ) او نه به كفالت قبلوي. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ، ځکه چي دا خالص احسان دې. فَلَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِ التِّجَارَةِ وَالْاكْتِسَابِ نو د تجارت او د مزدورۍ د ضروورياتو څني نه دي. وَلَا يَمْلِكُهُ بِنَوْعَيْهِ نَفْسًا وَمَالًا نو د نفس او د مال د دواړو د كفالت به مالك نه وي. لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ تَبَرُّعٌ ځکه چي دا واړه احسان دې. (وَلَا يُقْرِضُ) او نه به پور وركوي. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ لَيْسَ مِنْ تَوَابِعِ الْاكْتِسَابِ ځکه چي دا هم احسان دې. د مزدورۍ د توابعو څني نه دې. (فَإِنْ وَهَبَ عَلَى عِوَضٍ) بيا كه هبه ئې كړو. عوض بانديې. (لَمْ يَصِحَّ) بيا هم صحيح نه ده. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ ابْتِدَاءً ځکه چي دا هم ابتداء كي احسان دې.

تشريح: مكاتب ته دا اختيار هم نشته. چه كفالت قبول كړي. كه كفالت د نفس وي. اوكه د مال وي. اوكه د مكفول عنه په حكم سره وي. او كه بغير د هغه د حكم وي. دغه ډول د نقد مال د پور ور كاوه اختيار نشته. ځکه چي دا كار د قبلې د تبرعاتو څني دې. د تجارت د ضروورياتو څني نه دې. او نه د مزدورۍ د توابع څني دي. كه مكاتب څه شئ د عوض په شرط هبه كړو. نودا به هم جائز نه وي. ځکه چي ابتداء كي هبه هم احسان وي. او په عقد كتابت كي تبرع داخل نه ده.

### مكاتب لپاره د خپلې وينځي د نكاح د اختيار حكم

(وَإِنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ) كه د مكاتب د خپلې وينځي نكاح اوكړله. (جَازَ) نو دا جائز دى. لِأَنَّهُ اكْتِسَابٌ لِلْمَالِ ځکه چي دا مال ګټل دى. فَإِنَّهُ يَتَمَلَّكُ بِهِ الْمَهْرَ ځکه چي هغه به ددې په ذريعه د مهر مالك وي. فَدَخَلَ تَحْتَ الْعَقْدِ. نودا به په عقد كي داخل وي. قَالَ (وَكَذَلِكَ إِنْ كَاتَبَ عَبْدَهُ) دغه ډول كه مكاتب ئې كړو. خپل غلام.

تشريح: كه مكاتب پخپلو تجارتي غلامانو كي يو غلام مكاتب كړو. نو زموږ په نيز استحساناً دا هم صحيح دى. امام مالك، قاضي حنبلي، او اهل ظاهر هم ددې قائل دى.

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوزَ او قياس دادې. چه جائز نه وي. وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ، هم دا د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله



قول دې. لِأَنَّ مَآلَهُ الْعِتْقُ وَالْمُكَاتَبُ ځکه چي د كتابت انجام آزاديدل دى. لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ كَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ. او مكاتب ددې اهل نه دې. لكه څنګه چي په مال بانديې د آزادولو اهل نه دې. وَجْهُ الْاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّهُ عَقْدُ اكْتِسَابٍ لِلْمَالِ چي دا د مال ګټلو عقد دې. فَيَمْلِكُهُ كَتَزْوِيجِ الْأَمَةِ وَكَالْبَيْعِ نو هغه به ددې مالك وي. پشان د وينځي د نكاح، او پشان د خپل مال د خرڅولو. وَقَدْ يَكُونُ هُوَ أَنْفَعَ لَهُ مِنَ الْبَيْعِ بلكه كتابت كله كله د بيع نه هم زيات نفع والا وي. لِأَنَّهُ لَا يُزِيلُ الْمِلْكَ إِلَّا بَعْدَ وُصُولِ الْبَدَلِ إِلَيْهِ ځکه چي هغه ملك نه زائل كوي. مګر ده ته د بدل رسيدلو نه پس. وَالْبَيْعُ يُزِيلُهُ قَبْلَهُ او بيع ددې نه وړاندې زائل كوي. وَلِهَذَا يَمْلِكُهُ الْأَبُ وَالْوَصِيُّ په دې وجه پلار او وصي (وصيت كونكي) ددې مالك وي.

تشريح: او د قياس تقاضه داوه. چه جائزنه وي. لكه چي امام زفر، امام شافعي، او د امام احمد رحمهم الله قول هم دادې. ځکه د عقد كتابت انجام دادې. چه هغه آزاد شي. حالانكه مكاتب ته ددې اختيار نشته. بالكل هم دغه ډول لكه څنګه چي ده ته د مال په عوض د آزادولو اختيار نشته. وجه د استحسان داده. چه د كتابت په ذريعه مال حاصليږي. نو لكه څنګه چي د مال ګټلو په بنا (بنياد) مكاتب د خپلې وينځي د نكاح، او د اخستلو او خرڅولو اختيار لري. دغه ډول به د مكاتب كاوه اجازت هم وي. بلكه بعض وخت د بيع په نسبت كتابت زيات نفع وركونكي وي. ځکه چي عقد كتابت د عبد مكاتب ملك نه زائل كوي. تركومه پوري چي ده ته بدل كتابت راؤ نه رسي. او په بيع كي د ثمن وصولولو نه وړاندې ملك زائل كيږي. ددې باوجود هركله چي مكاتب د بيع مالك دې. نو د كتابت به په طريقة اولى مالك وي. په دې وجه پلار او وصي يعنى (وصيت كونكي) ته د خپل وړوكي اولاد د غلام مكاتب كاوه اختيار وي.

ثُمَّ هُوَ يُوجِبُ لِلْمَمْلُوكِ مِثْلَ مَا هُوَ ثَابِتٌ لَهُ. بيا عقد كتابت د مملوك لپاره هم هغه ثابتوي. كوم چي مكاتب لپاره دى. بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ لِأَنَّهُ يُوجِبُ فَوْقَ مَا هُوَ ثَابِتٌ لَهُ. په خلاف په مال د آزادولو. چه دا د هغې نه زيات ثابتوي. كوم چي مكاتب لپاره ثابت دې. قَالَ:

تشريح: بيا مكاتب اول مكاتب ثاني يعنى خپل مملوك لپاره هغه شئ ثابتوي. كوم چي د ړومبي كتابت په ذريعه د ړومبي مكاتب لپاره ثابت دې. او هغه ملك يد او مالكيت د تصرف دې. چه ددې اختيار ړومبي مكاتب ته د كتابت په ذريعه حاصل دې. او دا قاعده ده. چه كوم سړي د څه شئ پخپله مالك وي. هغه بل كس ددې مالك جوړولې شي. لكه څنګه چي معير عاريت بانديې او مستاجر اجرت بانديې وركولې شي. نو كوم اختيارات چي ړومبي ته حاصل دى. هغه هم ددې غلام لپاره ثابتولې شي. كوم چي ده مكاتب كړې دې. په خلاف په مال بانديې د آزادولو، چه هغه خپل غلام مال بانديې نشي آزادولې. ځکه چي دا آزادي مملوك لپاره داسې اختيار ثابتوي. كوم چي پخپله د مكاتب د اختيار نه زيات دى. وجه داده. چه په مال بانديې د اعتاق (آزادۍ) په صورت كي د ړومبي مكاتب مملوك ته په نفس قبول سره في الحال آزادي حاصليږي. ادا كول به مال بانديې موقوف نه وي. حالانكه ړومبي مكاتب ته دا خبره حاصل نه ده. ځکه چي مكاتب ته صرف حق د آزادۍ حاصليږي. او په مال بانديې آزاد شوي ته حقيقي آزادي حاصليږي. اوس كه د مكاتب خپل مملوك په مال بانديې آزادول جائز وي. نو لازميږي به چي مكاتب يو غلام ته داسې اختيار وركړل. چه د هغې دې پخپله هم مالك نه دې. يعنى پخپله اوس هم غلام دې. او ده بل كس آزاد كړو. حالانكه دا نا ممكنه ده. نو په مال بانديې مكاتب كول به جائز وي. خو په مال بانديې آزادول به جائز نه وي.

فَإِنْ أَدَّى الثَّانِي قَبْلَ أَنْ يُعْتَقَ الْأَوَّلُ بيا كه اداكړو دوهم د ړومبي د آزاديدلو نه وړاندې. فَوَلَاؤُهُ لِلْمَوْلَى، نو دده ولاء به د آقا لپاره وي. لِأَنَّ لَهُ فِيهِ نَوْعَ مِلْكٍ. ځکه چي په دې كي يو ډول له د آقا ملكيت هم دې. وَتَصِحُّ إِضَافَةُ الْإِعْتَاقِ إِلَيْهِ فِي الْجُمْلَةِ، او دده اړخ ته د اعتاق نسبت في الجمله صحيح دې. فَإِذَا تَعَذَّرَ إِضَافَتُهُ إِلَى مُبَاشِرِ الْعَقْدِ لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ نو كله چي د اعتاق نسبت مباشر عقد اړخ ته متعذر شو. د اهليت نه كيدلو په وجه. أُضِيفَ إِلَيْهِ كَمَا فِي

الْعَبْدُ إِذَا اشْتَرَى شَيْئًا نو دده آقا ارخ ته نسبت اوکړې شو.لکه عبد ماذون، که یو شئ واخلی،نو ملك آقا لپاره ثابتیږی.

**تشریح:** د مکاتب خپل غلام مکاتب کول جائز دی.لکه څنګه چې پورته معلومه شوه.اوس ددې درې صورتونه دی.① مکاتب ثانی (مکاتب المکاتب) به د بدل کتابت اداکول،د مکاتب اول ادا کاوه نه وړاندې کوی.② یا دده نه روسته ③ یا دده نه سره سره.په رومبی او دریم صورت کې د مکاتب ثانی ولاء به د دمکاتب آقا ته ملاویږی.ځکه چې مکاتب ثانی کې د آقا هم یو ډول له ملکیت دې.په دې معنی چې مکاتب ثانی د مکاتب اول په واسطه د آقا مکاتب دې.نو اول لپاره د آقا کتابت په منزله د علة العلة شو.(هم دا وجه ده.که مکاتب اول د بدل اداکولونه عاجز شی.نو دده پشان به مکاتب ثانی هم د آقا ملك وی).او آقا ارخ ته د آزادولو نسب فی الجمله صحیح دې.لکه چې مجازاً وئیلی شی.مولا زید، معتق زید، اګرچه هغه معتق وی.هم دا وجه ده.که یو کس د موالی فلانی لپاره وصیت اوکړو.حالانکه په ژوندو کې د هغه هیڅ څوك آزادونکې نشته.البته معتق المعتق دې.نو د وصیت مستحق به هم دې وی.

ⓐ بیا د مکاتب ثانی د آزادولو نسبت مکاتب اول ارخ ته په دې وجه متعذر دې.چه هغه پخپله اوس هم غلام دې.په دې وجه به د آزادولو نسبت دده آقا ارخ ته کولې شی.ځکه چې حکم لکه څنګه چې علت ارخ ته مضاف وی.دغه ډول د علت علت ارخ ته هم مضاف کیږی.کله چې علت ارخ ته ددې اضافت متعذر شی.لکه عبد ماذون که یو شئ واخلی.نو دده د آقا ملکیت ثابتیږی.ځکه چې عبد ماذون ته د مالك کیدلو لیاقت نشته.اګرچه اصلی اخستونکې هم دا عبد ماذون دې.بهرحال مکاتب اول چونکه اوس هم غلام دې.او هغه ته د ولاء اهلیت نشته.په دې وجه به ولاء دده آقا ته ملاویږی.

(فَلَوْ أَدَّى الْأَوَّلُ بَعْدَ ذٰلِكَ وَعَتَقَ) بیا که رومبی اداکړو.ددې نه روسته او آزاد شو.(لَا يَنْتَقِلُ الْوَلَاءُ إِلَيْهِ) نو ولاء به دده ارخ ته نه منتقل کیږی.لِأَنَّ الْمَوْلَى جُعِلَ مُعْتِقًا ځکه چې آقا معتق ګرځولې شوې دې.وَالْوَلَاءُ لَا يَنْتَقِلُ عَنِ الْمُعْتِقِ او ولاء د معتق نه نه منتقل کیږی.(وَإِنْ أَدَّى الثَّانِي بَعْدَ عِتْقِ الْأَوَّلِ) وکه دوهم اداکړو.د رومبی د آزادولو نه پس.(فَوَلَاؤُهُ لَهُ) نو دده ولاء به دده لپاره وی.لِأَنَّ الْعَاقِدَ مِنْ أَهْلِ ثُبُوتِ الْوَلَاءِ ځکه چې اوس عاقد د ولاء لیاقت لری.وَهُوَ الْأَصْلُ او هم دا اصل دې.فَيَثْبُتُ لَهُ نو ولاء به دده لپاره ثابتیږی.

**تشریح:** بیا که آقا ته د مکاتب ثانی د ولاء ملاویدلو نه پس، مکاتب اول خپل بدل کتابت اداکړو.او آزاد شو.نو دده د مکاتب ولاء به دده ارخ ته نه منتقل کیږی.ځکه چې آقا معتق ګرځولې شوې دې.او ولاء آزادونکی ارخ ته نه منتقل کیږی.ځکه چې دلته کې آقا په یو لحاظ سره مباشرةً آزادونکې دې.او ولاء جزء د ولاء، چې دلته کې د وینځې آقا مباشرةً آزادونکې نه وی.بلکه د هلك اعتاق د مور په اعتبار سره تسبباً آزاد وی.

ⓐ په دې اړه کې اصل قاعده داده.چه سبب ارخ ته د حکم اضافت هغه وخت کیږی.کله چې علت ارخ ته اضافت کول متعذر وی.اود ولاء د جزء په مسئله کې تعذر هغه وخته پورې دې.کومه پورې چې پلار نه دې آزاد شوې.کله چې هغه آزاد شو.نو اړتیا ختم شو.نو ولاء به د پلار قوم ارخ ته منتقل کیږی.اوکه دوهم مکاتب خپل بدل کتابت د مکاتب اول (د بدل کتابت ادا کاوه او) آزادیدلو نه روسته اداکړو.او آزاد شو.نو دده ولاء به مکاتب اول ته ملاویږی.ځکه چې اوس ده ته د ولاء اهلیت حاصل دې.او اصل مکاتب هم دادې.نو ولاء به هم ده ته حاصلیږی.

### مکاتب لپاره د خپل غلام مکاتب کولو.یا ښځې سره د نکاح کولو حکم

قَالَ (وَإِنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ عَلَى مَالٍ) که مکاتب خپل غلام په مال باندې آزاد کړو.(أَوْ بَاعَهُ مِنْ نَفْسِهِ) یا ئې دې هم لاس خرڅ کړو.(أَوْ زَوَّجَ عَبْدَهُ) یا ئې خپل غلام له واده اوکړو.(لَمْ يَجُزْ) نو دا جائز نه دی.لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ لَيْسَتْ



مِنَ الْكَسْبِ ځکه چې دا شیان د مزدورئ ځنې دی.وَلَا مِنْ تَوَابِعِهِ.او نه ددې د توابع ځنې دی.أَمَّا الْأَوَّلُ بهرحال رومبې فَلِأَنَّهُ إِسْقَاطُ الْمِلْكِ عَنْ رَقَبَتِهِ وَإِثْبَاتُ الدَّيْنِ فِي ذِمَّةِ الْمُفْلِسِ نو ځکه چې دا دده د سټ نه ملك زائل کول،او د مفلس په ذمه قرضه ثابتول دی.فَأَشْبَهَ الزَّوَالَ بِغَيْرِ عِوَضٍ.نودا د عوض نه بغیر د زائل کاوه مشابه شو.وَكَذَا الثَّانِي دغه ډول دوهم دې.لِأَنَّهُ إِعْتَاقٌ عَلَى مَالٍ فِي الْحَقِيقَةِ.ځکه چې دا په حقیقت کې مال باندې آزادول دی.وَأَمَّا الثَّالِثُ پاتې شو دریم،فَلِأَنَّهُ تَنْقِيصٌ لِلْعَبْدِ وَتَعْيِيبٌ لَهُ وَشَغْلُ رَقَبَتِهِ بِالْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ،نو ځکه چې دا غلام ناقص عیب دار کول او دده سټ په مهر او نفقه کې ګیرول دی.بِخِلَافِ تَزْوِيجِ الْأَمَةِ په خلاف د وینځې د واده.لِأَنَّهُ اكْتِسَابٌ لِاسْتِفَادَتِهِ الْمَهْرَ عَلَى مَا مَرَّ چې دا مزدوری ده.ددې په ذریعه د مهر حاصلولو په وجه.لکه څنګه چې تیر شو.

**تشریح:** که مکاتب خپل غلام مال باندې آزاد کړو.یا ئې دده رقبه هم دده په لاس خرڅ کړو.یا ئې یوې ښځې سره دده نکاح اوکړله.نودا کار چونکه نه مزدوری او ګټه ده.اونه د مزدورئ او ګټې د توابع ځنې دی.په دې وجه به جائز نه وی.① په دې وجه جائز نه دی.چه دا ددې غلام د رقبې نه خپل ملك زائل کول،اود یو مفلس اوغریب په ذمه خپل پور ثابتول دی.نو ګویا چې ده مفت آزاد کړو.② ځکه جائز نه دی.چه دا په ښکاره اګرچه بیع ده.خو په حقیقت کې په مال باندې آزادول دی.او مکاتب لپاره د اعتاق اجازت نشته.③ ځکه جائز نه دی.چه په دې صورت کې غلام ناقص او عیب دار کول، او دې د ښځې په مهر او نان نفقه کې ګیرول، خپل مالیت خرابول دی.البته که د خپلې مزدورئ (او د ګټې) وینځې نې نکاح اوکړله.ځکه چې دا هم د مزدورئ یوه طریقه ده.چه ددې په ذریعه به ده ته مهر حاصل شی.

قَالَ (وَكَذٰلِكَ) (الْأَبُ وَالْوَصِيُّ فِي رَقِيقِ الصَّغِيرِ بِمَنْزِلَةِ الْمُكَاتَبِ) دغه ډول پلار او وصی د صغیر په مملوك کې په منزله د مکاتب دې.لِأَنَّهُمَا يَمْلِكَانِ الْاِكْتِسَابَ كَالْمُكَاتَبِ،ځکه چې دوی دواړه د مزدورئ مالکان دی.د مکاتب پشان،وَلِأَنَّ فِي تَزْوِيجِ الْأَمَةِ وَالْكِتَابَةِ نَظَرًا لَهُ،او ځکه چې د وینځې په نکاح کې ،او په مکاتب کاوه کې صغیر لپاره بهتری ده.وَلَا نَظَرَ فِيمَا سِوَاهُمَا او ددې نه په علاوه کې هیڅ بهتری نشته.وَالْوِلَايَةُ نَظَرِيَّةٌ حالانکه د پلار او وصی ولایت نظری (د شفقت په لحاظ) دې.

**تشریح:** د احنافو، امام مالك او د امام احمد رحمهم الله په نیز پلار او وصی ته د وړوکی اولاد دغلامانو په حق کې هم هغه اختیارات حاصل دی.کوم چې مکاتب ته د خپلې مزدورئ په غلام کې حاصل دی.اود کومو امورو اختیار چې مکاتب ته د خپل غلام په اړه کې نشته.د هغې اختیار پلار او وصی ته هم نشته.نو پلار او وصی د وړوکی اولاد غلام مکاتب کولې شی.او دده د وینځې نکاح کولې شی.خو دده د غلام نکاح یا پخپله دده په لاس خرڅول، یا د مال په عوض نشی آزادولې.

ⓐ وجه داده.چه د مکاتب پشان پلار او وصی هم د مزدورئ (او ګټې) مالکان دی.او په دې وجه هم چې د وینځې نکاح کول، او دده د غلام مکاتب کاوه کې د صغیر بهتری ده.او ددې نه په علاوه کې هیڅ بهتری نشته.اود پلار او وصی ولایت چونکه نظری (او په لحاظ د شفقت) دې.په دې وجه چې کوم کار د بچی په حق کې بهتر وی.هم هغه به جائز وی.

### د عبد ماذون لپاره د مذکوره اختیاراتو حکم

قَالَ (فَأَمَّا الْمَأْذُونُ لَهُ) پاتې شو هغه غلام چې هغه ته د تجارت اجازت ورکړې شوې وی.(فَلَا يَجُوزُ لَهُ شَيْءٌ مِنْ

ذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ،(۱) نو هغه لپاره جائز نه دی هیڅ شی؛ د طرفینو رحمهما الله په نیز. وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. لَهُ أَنْ يُزَوِّجَ أَمَتَهُ) چې ده ته د وینځې د نکاح اختیار شته.

**تشریح:** د طرفینو رحمهما الله په نیز عبد ماذون په مذکوره امورو کې د هیڅ امر اهل نه دې. یعنی نه هغه د تجارت غلام په مال باندې آزادولې شی. نه دده نکاح کولې شی. او نه غلام هم دده په لاس خرڅولې شی. نه د تجارت د وینځې واده کولې شی. البته د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د وینځې د واده اختیار دې.

قاعده کلیه⊙ صاحب د نهایه رحمه الله لیکلی دی. په دې باب کې اصل دادې. چه هرهغه کس چې دده تصرف په تجارت وغیره ټولو کې عام وی. هغه د وینځې نکاح کولې شی. لکه پلار، نیکه، وصی، شریك مفاوض، مکاتب، قاضی، او دده امین. او هرهغه کس چې دهغه تصرف په تجارت کې خاص وی. هغه د طرفینو رحمهما الله په نیز د وینځې نکاح نشی کولې. لکه چې مضارب شریك عنان او عبد ماذون دی. قاضی خان او شیخ محبوبی رحمهما الله هم داسې ذکر کړی دی.

**تشریح:** په دې دا اشکال کیږی. چه د ،،ذالك،، مشارالیه که خاص طور سره د مال په عوض آزاد شوې غلام، یا غلام هم دده په لاس خرڅول، یا دده واده کول، کوم چې ددې نه وړاندې ذکر دی. یعنی «وان اعتق عبده علی مال او باعه من نفسه او زوج عبده لم يجز» بیا خو «وقال ابویوسف رحمه الله له ان یزوج امته» ونیل ددې منافی دی. ځکه چې په ذکرشوی درې واړو څیزونو کې د وینځې واده داخل نه دې. نود امام ابویوسف رحمه الله اختلاف ذکرکول بې معنی شو. اوکه د ،،ذالك،، مشارالیه واړه امور وی. کوم چې په دې باب کې ذکر دی. نو په دې باندې دا اعتراض کیږی. چه اخستل خرڅول، لکه څنګه چې مکاتب لپاره جائز دی. دغه ډول عبد ماذون لپاره هم قطعاً جائز دی. نو «فلا یجوز له شئ من ذالك» سلب کلی بې معنی شو.

وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْمُضَارِبُ وَالْمُفَاوِضُ وَالشَّرِيْكُ شَرِكَةَ عَنَانٍ او هم په دې اختلاف (مبنی) دې. مضارب، مفاوض، او د شرکت عنان شریك.

**تشریح:** په قول د شیخ کاکی رحمه الله دلته لفظ د مفاوض په سهو د کاتب سره لیکلې شوې دې. ځکه چې مفاوض په منزله د مکاتب دې. علامه انزاری رحمه الله فرمائی. چه مفاوض ته بالاتفاق د وینځې د واده اختیار وی. لکه چې امام کرخی رحمه الله پخپل مختصر کې په باب المفاوضه کې صراحت کړې دې. «و یجوز لأحد المفاوضین ان یکاتب عبید التجارة و یأذن لهم فی التجارة و لا یجوز أن یعتق شیئاً من رقیق التجارة علی مال و لا یجوز أن یزوج العبد أیضاً و یجوز أن یزوج الأمة» دغه ډول فقیه ابواللیث رحمه الله په شرح جامع صغیرکې د پلار، وصی، مفاوض، او مکاتب څلور واړو متعلق لیکلی دی. «فهؤلاء الأربعة الأصناف لا یجوز عتقهم علی مال و یجوز کتابتهم فی الإستحسان و إن زوج أحد من هؤلاء أمة جاز النکاح بالإتفاق (ثم قال) ولو کان عبداً ماذوناً أو شریك عنان أو مضارباً زوج أحد هؤلاء الثلاثة لم یجز فی قول أبی حنیفة ومحمد رحمهما الله، و یجوز فی قول أبی یوسف رحمه الله و لا یجوز کتابة هؤلاء النفر الثلاثة بالإتفاق» ،،دا څلور قسمه خلګ دی. چه ددې د ارخه غلام په مال باندې آزادول جائز نه دی. او مکاتب کول استحساناً جائز دی. اوکه په دې څلورو واړو کې یو کس د وینځې نکاح اوکړله. نو بالاتفاق جائز ده. (ددې نه روسته نې ونیلی دی چه) که غلام ماذون، یا شریك عنان، یا مضارب وی. او په دې دریو واړو کې څوك سړې د وینځې نکاح اوکړی. نود طرفینو رحمهما الله په نیز جائز نه ده. د امام ابویوسف رحمه الله په نیز جائز ده. او ددوی مکاتب کول بالاتفاق جائز دی.

دغه ډول په طحاوی کې دی. «الأب و الوصی و المفاوض لا یملکون العتق علی مال و یملکون الکتابة و هؤلاء الثلاثة یملکون تزویج الأمة و لیس لهم تزویج العبد و أما الصبی الماذون و العبد الماذون و الشریك شرکة عنان و المضارب لا یجوز الکتابة و لا تزویج العبد بالإجماع و فی تزویج الأمة إختلاف عند أبی حنیفة ومحمد رحمهما الله لا یجوز و عند أبی یوسف رحمه الله یجوز» ،پلار، وصی ،او

---

(۱) القول الراجح هو قول الطرفین رحمهما الله کذا فی ردالمحتار(۵\۱۱٤) والبحرالرائق (۸\۱٦۸) وبدائع الصنائع (۷\۱۹۷) وکنز الدقائق (۳٤۰) ومجمع الأنهر(٤\٦۷) نقلاً عن القول الراجح (۲٤۰۱۲)_



مفاوض ته په مال باندې د ازادولو اختیار نشته. د مکاتب کاوه اختیار شته دې. او دوی دریو واړو ته د وینځې د واده هم اختیار دې. خو غلام ته د واده کاوه اختیار نشته. پاتې شو ماشوم ماذون، عبد ماذون، شریك عنان، او مضارب، نو په دوی کې د هیڅ یوکس د ارخه بالاجماع نه مکاتب کول جائز دی. نه د غلام واده، او د وینځې د واده په اړه کې اختلاف دې. د طرفینو رحمهما الله په نیز ناجائز او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز جائز دې،،

ددې ټولو نقلونو نه هم دا ثابتیږی. چه د وینځې د واده د جواز متعلق د مفاوض په اړه کې هیڅ اختلاف نشته. بلکه مفاوض بالاتفاق د وینځې نکاح کولې شی.

هُوَ قَاسَهُ عَلَى الْمُكَاتَبِ وَاعْتَبَرَهُ بِالْإِجَارَةِ. دوی ماذون په مکاتب باندې، تزویج (یعنی د وینځې واده) نې په اجاره باندې قیاس کړې دې.

**تشریح:** دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې. ددې تشریح داده. چه امام ابویوسف رحمه الله عبد ماذون د وینځې د نکاح په جواز کې مکاتب باندې قیاس کړې دې. مکاتب لپاره د خپلې وینځې نکاح کول جائز دی. نو هم دغه ډول د عبد ماذون لپاره هم جائز دی. او موصوف نکاح کول په اجاره باندې قیاس کړې دې. چه ماذون له لپاره د خپل غلام او وینځې په اجاره باندې ورکول جائز دی. نو د وینځې نکاح به هم جائز وی. «إذ کل واحد منهما تملیك المنفعة ببدل»

اعتراض⊙ د امام ابویوسف رحمه الله په ذکرشوی قیاسی دلیل باندې صاحب د نتائج دا اعتراض کړې دې. چه دا دواړه قیاسونه محل نظر دی. رومبې قیاس خو په دې وجه که د وینځې په نکاح کې ماذون له په مکاتب باندې قیاس کول صحیح وی. نود خپل غلام په مکاتب کولوکې هم د ماذون له قیاس په مکاتب باندې صحیح کیدل پکار دی. چه مکاتب لپاره د خپل غلام مکاتب کول جائز دی. د قیاس په طور ماذون له لپاره هم مکاتب کول جائز دی. حالانکه ماذون له لپاره د خپل غلام مکاتب کول بالاتفاق ناجائز دی. او دوهم قیاس په دې وجه محل نظر دې. که تزویج په اجاره باندې قیاس کول تام وی. په دې معنی چې ماذون له لپاره خپل غلام او وینځه اجاره باندې ورکول جائز دی. نو ددې قیاس په رو سره لازمیږی. چه ماذون غلام لپاره د خپل غلام نکاح هم جائز وی. حالانکه ماذون لپاره دا بالاجماع ناجائز ده.

فائده⊙ علامه مرغینانی رحمه الله عینین یعنی د ماذون او مکاتب په ارخ کې لفظ د قیاس استعمال کړې دې. او فعلین یعنی د نکاح او اجاره په ارخ کې نې لفظ د اعتبار استعمال کړې دې. صاحب د نهایه رحمه الله ددې نکته دا بیان کړې ده. چه بین العینین مماثلت چونکه بالکل ښکاره دې. په دې معنی چې په دې دواړو کې فك حجر (رکاوټ اوچتول) او د تصرف اطلاق دې. نو شرط د قیاس اوموندې شو. په دې وجه نې په دې کې لفظ د قیاس استعمال کړې دې. په خلاف د ذکرشوی فعلین، چه په دې کې مماثلت صرف د فعلیت په لحاظ سره دې. ځکه چې اجاره د جانبینو نه د معاوضات مالیه ځنې ده. نو دلته کې د اعتبار لفظ استعمال زیات لائق دې. پاتې شو د صاحب د عنایه رحمه الله قیاس او اعتبار په منځ کې د ترادف دعوه نودا غیرظاهر او د دلیل محتاج ده.

وَلَهُمَا طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. أَنَّ الْمَأْذُوْنَ لَهُ يَمْلِكُ التِّجَارَةَ چې عبد ماذون د تجارت مالك وی. وَهٰذَا لَيْسَ بِتِجَارَةٍ، او دا تجارت نه دې. پاتې شو مکاتب فَأَمَّا الْمُكَاتَبُ يَمْلِكُ الْاِكْتِسَابَ نو هغه د مزدورۍ مالك وی. وَهٰذَا اكْتِسَابٌ، او دا مزدوری ده.

**تشریح:** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. چه عبد ماذون ته د تجارت اختیار دې. او نکاح د وینځې د تجارت ځنې نه ده. ځکه چې نکاح مبادله د مال بالمال نه ده. ځکه چې بضع په حقیقت کې مال نه دې. حالانکه تجارت مبادله د مال بالمال ته وائی. پاتې شو مکاتب، نو هغه د مزدورۍ مالك وی. او د وینځې نکاح هم د مزدورۍ یوه طریقه ده. ځکه مزدوری هغې ته وائی. چه د هغې په ذریعه مال حاصل شی. اودا خبره په نکاح د وینځې

ذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ (١) نو هغه لپاره جائز نه دی هیڅ شئ د طرفینو رحمهما الله په نیز. وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. لَهُ أَنْ يُزَوِّجَ أَمَتَهُ) چې ده ته د وینځې د نکاح اختیار شته.

**تشریح:** د طرفینو رحمهما الله په نیز عبد ماذون په مذکوره امورو کې د هیڅ امر اهل نه دې. یعنی نه هغه د تجارت غلام په مال باندې آزادولې شی. نه دده نکاح کولې شی. او نه غلام هم دده په لاس خرڅولې شی. نه د تجارت د وینځې واده کولې شی. البته د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د وینځې د واده اختیار دی.

قاعده کلیه ﴿ صاحب د نهایه رحمه الله لیکلی دی. په دې باب کې اصل دادې. چه هرهغه کس چې دده تصرف په تجارت وغیره ټولو کې عام وی. هغه د وینځې نکاح کولې شی. لکه پلار، نیکه، وصی، شریك مفاوض، مکاتب، قاضی، او دده امین. او هرهغه کس چې دهغه تصرف په تجارت کې خاص وی. هغه د طرفینو رحمهما الله په نیز د وینځې نکاح نشی کولې. لکه چې مضارب شریك عنان او عبد ماذون دی. قاضی خان او شیخ محبوبی رحمهما الله هم داسې ذکرکړی دی.

**تشریح:** په دې دا اشکال کیږی. چه د ،،ذالك،، مشارالیه که خاص طور سره د مال په عوض آزاد شوې غلام، یا غلام هم دده په لاس خرڅول، یا دده واده کول، کوم چې ددې نه وړاندې ذکر دی. یعنی ﴿ وإن أعتق عبده على مال أو باعه من نفسه أو زوج عبده لم يجز ﴾ بیا خو ﴿ وقال أبويوسف رحمه الله له أن يزوج أمته ﴾ ونیل ددې منافی دی. ځکه چې په ذکرشوی درې وارو ځیزونو کې د وینځې واده داخل نه دې. نود امام ابویوسف رحمه الله اختلاف ذکرکول بې معنی شو. اوکه د ،، ذالك،، مشارالیه واړه امور وی. کوم چې په دې باب کې ذکر دی. نو په دې باندې دا اعتراض کیږی. چه اختسل خرڅول. لکه څنګه چې مکاتب لپاره جائز دی. دغه ډول عبد ماذون لپاره هم قطعاً جائز دی. نو ﴿ فلا يجوز له شئ من ذالك ﴾ سلب کلی بې معنی شو.

وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْمُضَارِبُ وَالْمُفَاوِضُ وَالشَّرِيْكُ شَرِكَةَ عِنَانٍ او هم په دې اختلاف (مبنی) دی. مضارب، مفاوض، او د شرکت عنان شریك.

**تشریح:** په قول د شیخ کاکی رحمه الله دلته لفظ د مفاوض په سهو د کاتب سره لیکلې شوې دې. ځکه چې مفاوض په منزله د مکاتب دې. علامه انزاری رحمه الله فرمائی. چه مفاوض ته بالاتفاق د وینځې د واده اختیار وی. لکه چې امام کرخی رحمه الله پخپل مختصر کې په باب المفاوضه کې صراحت کړې دې. ﴿ و يجوز لأحد المفاوضين أن يكاتب عبد التجارة و يأذن لهم في التجارة و لا يجوز أن يعتق شيئاً من رقيق التجارة على مال و لا يجوز أن يزوج العبد أيضاً و يجوز أن يزوج الأمة ﴾ دغه ډول فقیه ابوالليث رحمه الله په شرح جامع صغیرکې د پلار، وصی، مفاوض، او مکاتب څلور وارو متعلق لیکلی دی. ﴿ فهؤلاء الأربعة الأصناف لا يجوز عتقهم على مال و يجوز كتابتهم في الإستحسان و إن زوج أحد من هؤلاء أمة جاز النكاح بالإتفاق (ثم قال) ولو كان عبداً ماذوناً أو شريك عنان أو مضارباً زوج أحد هؤلاء الثلاثة لم يجز في قول أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله، و يجوز في قول أبي يوسف رحمه الله و لا يجوز كتابة هؤلاء النفر الثلاثة بالإتفاق ﴾ ،، دا څلور قسمه خلګ دی. چه ددې د اړخه غلام په مال باندې آزادول جائز نه دی. او مکاتب کول استحساناً جائز دی. اوکه په دې څلورو وارو کې یو کس د وینځې نکاح اوکړله. نو بالاتفاق جائز ده. (ددې نه روسته نې ونیلی دی چه) که غلام ماذون، یا شریك عنان، یا مضارب وی. او په دې دریو وارو کې څوك سرې د وینځې نکاح اوکړی. نود طرفینو رحمهما الله په نیز جائز نه ده. د امام ابویوسف رحمه الله په نیز جائز ده. او ددوی مکاتب کول بالاتفاق جائز دی.

§ دغه ډول په طحاوی کې دی. ﴿ الأب و الوصي و المفاوض لا يملكون العتق على مال و يملكون الكتابة و هؤلاء الثلاثة يملكون تزويج الأمة و ليس لهم تزويج العبد و أما الصبي المأذون و العبد المأذون و الشريك شركة عنان و المضارب لا يجوز الكتابة و لا تزويج العبد بالإجماع و في تزويج الأمة إختلاف عند أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله لا يجوز و عند أبي يوسف رحمه الله يجوز ﴾، پلار، وصی، او

---

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ردالمحتار (١١٤١٥) والبحرالرائق (١٦٨١٨) وبدائع الصنائع [illegible] كنز الدقائق (٣٤٠) ومجمع الأنهر (٦٧١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٠١٢)_



مفاوض ته په مال باندې د ازادولو اختیار نشته. د مکاتب کاوه اختیار شته دې او دوی دریو وارو ته د وینځې د واده هم اختیار دې خو غلام ته د واده کاوه اختیار نشته. پاتې شو ماشوم ماذون، عبد ماذون، شریك عنان، او مضارب، نو په دوی کې د هیڅ یوکس د اړخه بالاجماع نه مکاتب کول جائز دی نه د غلام واده، او د وینځې د واده په اړه کې اختلاف دې. د طرفینو رحمهما الله په نیز ناجائز او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز جائز دې،،

§ ددې ټولو نقلونو نه هم دا ثابتیږی. چه د وینځې د واده د جواز متعلق د مفاوض په اړه کې هیڅ اختلاف نشته. بلکه مفاوض بالاتفاق د وینځې نکاح کولې شی.

هُوَ قَاسَهُ عَلَى الْمُكَاتَبِ وَاعْتَبَرَهُ بِالْإِجَارَةِ. دوی ماذون په مکاتب باندې، تزویج (یعنی د وینځې واده) نې په اجاره باندې قیاس کړې دې.

**تشریح:** دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې. ددې تشریح داده. چه امام ابویوسف رحمه الله عبد ماذون د وینځې د نکاح په جواز کې مکاتب باندې قیاس کړې دې. مکاتب لپاره د خپلې وینځې نکاح کول جائز دی. نو هم دغه ډول د عبد ماذون لپاره هم جائز دی. او موصوف نکاح کول په اجاره باندې قیاس کړې دې. چه ماذون له لپاره د خپل غلام او وینځې په اجاره باندې ورکول جائز دی. نو د وینځې نکاح به هم جائز وی. ﴿ إذ كل واحد منهما تمليك المنفعة ببدل ﴾

§ **اعتراض** ﴿ د امام ابویوسف رحمه الله په ذکرشوی قیاسی دلیل باندې صاحب د نتائج دا اعتراض کړې دې. چه دا دواړه قیاسونه محل نظر دی. ړومبې قیاس خو په دې وجه که د وینځې په نکاح کې ماذون له په مکاتب باندې قیاس کول صحیح وی. نود خپل غلام په مکاتب کولوکې هم د ماذون له قیاس په مکاتب باندې صحیح کیدل پکار دی. چه مکاتب لپاره د خپل غلام مکاتب کول جائز دی. د قیاس په طور ماذون له لپاره هم مکاتب کول جائز دی. حالانکه ماذون له لپاره د خپل غلام مکاتب کول بالاتفاق ناجائز دی. او دوهم قیاس په دې وجه محل نظر دې. که تزویج په اجاره باندې قیاس کول تام وی. په دې معنی چې ماذون له لپاره خپل غلام او وینځه اجاره باندې ورکول جائز دی. نو ددې قیاس په رو سره لازمیږی. چه ماذون غلام لپاره د خپل غلام نکاح هم جائز وی. حالانکه ماذون لپاره دا بالاجماع ناجائز ده.

**فائده** ﴿ علامه مرغینانی رحمه الله عینین یعنی د ماذون او مکاتب په اړخ کې لفظ د قیاس استعمال کړې دی. او فعلین یعنی د نکاح او اجاره په اړخ کې نې لفظ د اعتبار استعمال کړې دې. صاحب د نهایه رحمه الله ددې نکته دا بیان کړې ده. چه بین العینین مماثلت چونکه بالکل ښکاره دې. په دې معنی چې په دې دواړو کې فك حجر (رکاوټ اوچتول) او د تصرف اطلاق دې. نو شرط د قیاس اوموندې شو. په دې وجه نې په دې کې لفظ د قیاس استعمال کړې دې. په خلاف د ذکرشوی فعلین، چه په دې کې مماثلت صرف د فعلیت په لحاظ سره دې. ځکه چې اجاره د جانبینو نه د معاوضات مالیه څنې ده. نو دلته کې د اعتبار لفظ استعمال زیات لائق دی. پاتې شو د صاحب د عنایه رحمه الله قیاس او اعتبار په منځ کې د ترادف دعوه نودا غیرظاهر او د دلیل محتاج ده.

وَلَهُمَا طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. أَنَّ الْمَأْذُوْنَ لَهُ يَمْلِكُ التِّجَارَةَ چې عبد ماذون د تجارت مالك وی. وَهٰذَا لَيْسَ بِتِجَارَةٍ، او دا تجارت نه دې. پاتې شو مکاتب فَأَمَّا الْمُكَاتَبُ يَمْلِكُ الْاِكْتِسَابَ نو هغه د مزدورۍ مالك وی. وَهٰذَا اكْتِسَابٌ، او دا مزدوری ده.

**تشریح:** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. چه عبد ماذون ته د تجارت اختیار دې. او نکاح د وینځې د تجارت څنې نه ده. ځکه چې نکاح مبادله د مال بالمال نه ده. ځکه چې بضع په حقیقت کې مال نه دې. حالانکه تجارت مبادله د مال بالمال ته وائی. پاتې شو مکاتب، نو هغه د مزدورۍ مالك وی. او د وینځې نکاح هم د مزدورۍ یوه طریقه ده. ځکه مزدوری هغې ته وائی. چه د هغې په ذریعه مال حاصل شی. اودا خبره په نکاح د وینځې

کې موجود ده.چه ددې په ذریعه مهر حاصلولې شي.

وَلِأَنَّهُ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِغَيْرِ الْمَالِ او خکه چې نکاح مبادله د مال بلا مال ده. فَيُعْتَبَرُ بِالْكِتَابَةِ دُونَ الْإِجَارَةِ نو دا به په کتابت باندې قیاس کولې شي.په اجاره به نشي قیاس کولې. إِذْ هِيَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ خکه چې اجاره مبادله د مال بالمال ده. وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ هَؤُلَاءِ كُلُّهُمْ تَزْوِيجَ الْعَبْدِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ په دې وجه دا واړه خلگ د غلام د نکاح کاوه اهل نه دی.

**تشریح:** ﴿لأنه مبادلة المال....﴾ دا د طرفینو رحمهما الله دوهم دلیل دې.چه واده خو مبادله د مال بلا مال ده.نو دا په کتابت باندې قیاس کول پکار دی.( چې کتابت هم په ابتداء کې مبادله د مال بلا مال وی ) په اجاره باندې قیاس کول پکار نه دی.خکه چې اجاره مبادله د مال بالمال وی.خکه چې په دې کې منفعت د عین شئ قائم مقام وی.نودا د مال په حکم کې شو.په دې وجه دا په باب د نکاح کې د مهر کیدلو قابل شو.

## مکاتب لپاره خپل پلار یا خوی سره د عقد کتابت حکم

(فَصْلٌ):فصل: قَالَ (وَإِذَا اشْتَرَى الْمُكَاتَبُ أَبَاهُ أَوِ ابْنَهُ) که مکاتب واخستلو، خپل پلار، یا خوئې، دَخَلَ فِي كِتَابَتِهِ) نو هغه دده په کتابت کې داخلیږی. لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ أَنْ يُكَاتِبَ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الْإِعْتَاقِ خکه چې هغه د مکاتب کاوه اهل دې.اگرچه د آزادولو اهل نه دې. فَيُجْعَلُ مُكَاتَبًا تَحْقِيقًا لِلصِّلَةِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ نو دا به مکاتب گرخولې شی.په قدر د امکان د صله رحمئ متحقق کاوه دپاره. أَلَا تَرَى آیا نه گورې أَنَّ الْحُرَّ مَتَى كَانَ يَمْلِكُ الْإِعْتَاقَ چې آزاد سړې کله د اعتاق مالك شي. يُعْتَقُ عَلَيْهِ نو هغه په ده باندې آزادیږی.

**تشریح:** کوم خلگ چې کتابت کې په طریقه د اصالت داخلیږی.د هغوی د مسئلو ذکر کاوه نه روسته د هغه خلگو مسئلې ذکر کوی.کوم چې په کتابت کې په طریقه د تبعیت داخلیږی. ﴿لأن التبع يتلو الأصل﴾

**قوله و اذا اشترى** که مکاتب خپل اصول او فروع ( پلار، زوې وغیره) واخستل.نو تبعاً به هغوی هم په کتابت کې داخلیږی.نو مکاتب چې آزادیږی.دوی به هم آزادیږی.گنی مکاتب سره به د آقا غلامئ کې اوسیږی.وجه داده.چه مکاتب که د آزادولو اهل نه دې.نو لږترلږ د مکاتب کاوه اهل دې.نو حتی الامکان به د صله رحمئ رعایت ساتلې شی.نو آزاد سړې چې کله د اعتاق مالك وی.او هغه پلار یا زوې واخستلو.نو هغه به په ده باندې آزادیږی.

**فائده**⊛ په متن کې یو څو خبرې د بیان قابل دی :① ابو الحسین قدوری رحمه الله چې پلار په خوی باندې مقدم ذکرکړې دې.دا د پلار د تعظیم په لحاظ سره دی.گنی په کتابت کې د داخلیدلو په ترتیب کې خونې په پلار باندې مقدم دې.که هغه په کتابت کې پیدا شوې وی.یا هغه اخستې شوې وی.او مولود فی الکتابت ( د کتابت په مهال پیدا شوې) په اخستې شوی خوی باندې مقدم دې.خکه چې د مولود فی الکتابة په حق کې د کتابت واړه احکام په طریقه د تبعیت بنکاره کیږی.مثلاً د پلار په ژوند کې دده بیع حرام وی.دده نه بدل کتابت د پلار د قسطونو مطابق اخستلې شی.په خلاف د مشتری د خوی ،چه په حالت د ژوند دده بیع حرام وی.خود پلار د مرگ نه روسته دده سره بدل کتابت د قسط نه بغیر فوری اخستلې شی.او د قسطونو مطابق مزدورئ کاوه باندې قابو نشی ورکولې.چه د مولود فی الکتابت په نسبت دده د حالت نقصان بنکاره شی.پاتې شو پلار، نو دده د مکاتب خوی په ژوند کې دده بیع حرام وی.اود خوی د مرگ نه پس، دده نه بدل کتابت نشی قبلولې.نه وقتی طور ( یعنی فی الحال) او نه غیر وقتی طور باندې ( یعنی روسته هم نه قبلیږی ).

② **قوله دخل فى الكتابة** دا نې وئیلی دی. ،،صار مکاتباً،، نې نه دی وئیلې.خکه چې هغه اصالةً مکاتب نه وی.گنی دده کتابت د مکاتب اصلی د عاجز کیدلو نه روسته پاته پاتې کیدل پکار دی.حالانکه داسې نه ده. اصلی مکاتب که خپل خان عاجز اوگنړی.نو پلار به خرخولې شی.خکه چې د داخل کتابت د اتباع په



وجه دې.د اصل کیدلو په وجه نه دې.③ که مکاتب خپله مور واخلی.نود مور حکم هم دده د پلار یاد خوی د حکم پشان دې.خو موصوف د پلار په ذکر باندې اکتفا کړې ده.او مور نې نه ده ذکرکړې.دا بله خبره ده.چه ذکر کول غوره وو.

## ذو رحم په اخستلو سره کتابت کښې داخلیږی اوکه نه؟

(وَإِنْ اشْتَرَى ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ لَا وِلَادَ لَهُ) که داسې ذی رحم محرم نې واخستلو چه دده سره د ولاء قرابت نشته لَمْ يَدْخُلْ فِي كِتَابَتِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو هغه به دده په کتابت کې نه داخلیږی.د امام ابوحنیفه په نیز. وَقَالَا: يَدْخُلُ) اعْتِبَارًا بِقَرَابَةِ الْوِلَادِ صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه داخلیږی.د ولاء د قرابت په قیاس سره. إِذْ وُجُوبُ الصِّلَةِ يَنْتَظِمُهُمَا خکه چې صله رحمی واجبیدل، دواړو ته گډ دي. وَلِهَذَا لَا يَفْتَرِقَانِ فِي الْحُرِّ فِي حَقِّ الْحُرِّيَّةِ خکه په دواړو کې هیڅ توپیر نه کیږی.د آزادئ په صورت کې په حق د آزادیدلو کې.

**تشریح:** که مکاتب خپل یو داسې ذی رحم محرم واخستلو.چه هغه سره قرابت د ولاء نشته لکه رور، خور، ترور وغیره.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به کتابت کې نه داخلیږی.د صاحبینو رحمهما الله په نیز به هغوی هم مکاتب کیږی، خکه چې صله رحمی قرابت د ولاء او قرابت غیرولاء، دواړو ته گډ ده.هم دا وجه ده.که آزاد سړی خپل پلار یا خونې واخستلو.چه هغه سره نې قرابت د ولادت دی.نو لکه خنگه چې دې آزادیږی.هم دغه ډول که خپل سکه رور نې واخستلو.نو هغه هم آزادیږی.نو لکه خنگه چې د آزاد په صورت کې په دې دواړو قرابتونو کې هیڅ توپیر نشته.دغه ډول د مکاتب په صورت کې به هم هیڅ توپیر نه وی.

وَلَهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. أَنَّ لِلْمُكَاتَبِ كَسْبًا لَا مِلْكًا، چې مکاتب لپاره صرف مزدوری ده.ملك نه دې. غَيْرَ أَنَّ الْكَسْبَ يَكْفِي لِلصِّلَةِ فِي الْوِلَادِ صرف دومره خبره ده.چه مزدوری کافی کیږی.صله رحمئ لپاره په قرابت د ولاء کې ، حَتَّى أَنَّ الْقَادِرَ عَلَى الْكَسْبِ يُخَاطَبُ بِنَفَقَةِ الْوَالِدِ وَالْوَلَدِ تردې چې په مزدورئ باندې قادر سړې ته حکم ورکولې شي.د پلار او د اولاد د نفقې، وَلَا يَكْفِي فِي غَيْرِهِمَا او مزدوری نه کافی کیږی.په غیر ولاء کې. حَتَّى لَا تَجِبُ نَفَقَةُ الْأَخِ إِلَّا عَلَى الْمُوسِرِ تردې چې د رور نفقه نه واجبیږی.خو په مال دار باندې

**تشریح:** د امام ابوحنیفه رحمه الله رومبې دلیل دادې.چه مکاتب صرف په مزدورئ او گټه کاوه باندې قادر وی.حقیقی ملك ده ته نه حاصلیږی.خکه چې رقیت کوم چې منافی د ملك دې.هغه موجود دې.په دې وجه هغه له د صدقې مال حلال دې.گویا چې هغه سره د مزدورئ مال وی.او هغه د هبه کاوه مالك نه وی.او که هغه خپله بنځه واخلی.نو دده د بنځې نکاح نه فاسدیږی.او صرف په مزدورئ باندې قادر کیدل په قرابت د ولاء کې صله رحمئ لپاره کافی دی.نو کوم سړې چې په مزدورئ باندې قادر وی.هغه ته دا حکم وی.چه هغه خپل پلار او اولاد ته نفقه ورکړی.خو د قرابت غیر ولاء، لپاره کافی نه وی.تردې چې د سکه رور نفقه صرف په دې وجه واجبیږی.چه هغه توانگر وی.( په مزدورئ والا باندې نه واجبیږی ).معلومه شوه.چه په قرابت محرمه کې د صله رحمئ په لحاظ سره د ولادت او غیر ولادت توپیر دې.

وَلِأَنَّ هَذِهِ قَرَابَةٌ تَوَسَّطَتْ بَيْنَ بَنِي الْأَعْمَامِ وَقَرَابَةِ الْوِلَادِ او خکه دا داسې قرابت دې.کوم چې د اکا (تره) د خوی او د قرابت د ولاء په منخ کې دې. فَأَلْحَقْنَاهَا بِالثَّانِي فِي الْعِتْقِ، وَبِالْأَوَّلِ فِي الْكِتَابَةِ نو دا موږ د آزادئ په حق کې دوهم سره،او د کتابت په حق کې رومبی سره ملاؤ کړې دې. وَهَذَا أَوْلَى او هم دا زیاته غوره ده. لِأَنَّ الْعِتْقَ أَسْرَعُ نُفُوذًا مِنَ الْكِتَابَةِ خکه چې عتق زیات تیز وی.په نافذ کاوه کې .د کتابت نه. حَتَّى أَنَّ أَحَدَ الشَّرِيكَيْنِ إِذَا كَاتَبَ تردې که یو شریك مکاتب کړو ، كَانَ لِلْآخَرِ فَسْخُهُ نو دوهم لپاره حق د فسخ وی. وَإِذَا أَعْتَقَ او که دده آزاد کړو. لَا يَكُونُ لَهُ فَسْخُهُ نو حق د فسخ نه وی.

**تشریح:** دا د امام ابوحنیفه رحمه الله دوهم دلیل دې.چه مذکوره قرابت ( یعنی رشته د محرمیت کوم چې بغیر د

ولادته وي ).یو داسې قرابت دې.کوم چې د بنو اعمام یعنی د ترونو د خامنو د قرابت ( چې دا په واسطه د عم (تره) کیدلو په وجه قرابت بعیده دې) اود ولادت قرابت په منځ کې دې.( چې دا د واسطهٔ نه بغیر کیدلو په وجه قرابت قریبه دې).او کوم شئ چې د دوی (دوه) ځیزونو په منځ کې واسطه وي.هغې ته د دواړو په منځ کې مشابهت حاصل وي.چه هغه دلته کې موجود دې.چه سکه رور ( مثلاً) په دې لحاظ د اکا (تره) د خوی د قرابت مشابه دې.چه ده ته زکاة ورکول، دده ښځې سره نکاح کول حلاله ده.دده ګواهي قبوله ده. که په قصد سره ئې قتل کړی.نو د هغه نه قصاص اخستلې شی.او په دې لحاظ د ولادت قرابت سره مشابه ده.چه دده سره نکاح حرامه ده.دده سره صله رحمی فرض ده.د نکاح په طور دواړه جمع کول حرام دی.نو موږ په دې دواړو مشابهتونو باندې داسې عمل کړې دې.چه قرابت د رورولئ د عتق په حق کې دوهم یعنی د ولادت قرابت سره ملاؤ کړو.تردې که آزاد سړې د خپل رور مالك شی.نو هغه په ده باندې آزادیږی. ﴿كما إذا ملك والده أو ولده﴾ اود کتابت په حق کې دا د رومبی یعنی د اکا (تره) د خوی قرابت سره ملاؤ کړو.تردې که مکاتب د خپل رور مالك شی.نو هغه به دده کتابت کې نه داخلیږی. ﴿كما إذا ملك ابن عمه﴾

**تشریح:** علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی.چه د عمل کومه طریقه پورته ذکر شوې ده.( یعنی قرابت د رورولئ د عتق په حق کې د ولادت قرابت سره او دکتابت په حق کې د بنو اعمام ( د ترونو د خامنو) قرابت سره ملاوول) دا ددې نه غوره دی.چه عمل ددې په عکس وي.( یعنی د عتق په حق کې قرابت د ترونو خامنو سره، اود کتابت په حق کې د ولادت قرابت سره ملاؤ کړې شی ) ځکه که موږ د رونړو قرابت د کتابت په حق کې د ولادت قرابت سره ملاؤ کړو.نود عتق په حق کې به هم ددې سره ملاوول لازمی وي.ځکه چې د کتابت په نسبت عتق زیات په جلتئ نافذ کیږی.تردې که په دوې (دوه) شریکانو کې یو مکاتب کړې وي.نو دوهم شریك دا فسخ کولې شی.او که یو شریك آزاد کړې وي.نو دوهم شریك دا نشی فسخ کولې.اود عمل په دې صورت کې د مشابهت ابطال لازمیږی. ﴿و أعمالهما و لو بوجه أولى من إهمال أحدهما﴾

## په کتابت کښې د ام ولد د بچی حکم

قَالَ ﴿وَإِذَا اشْتَرَى أُمَّ وَلَدِهِ﴾ وکه واخي خستلو ام ولد، ﴿دَخَلَ وَلَدُهَا فِي الْكِتَابَةِ﴾ نو دا خلیږی.ددې بچې په کتابت کې. ﴿وَلَمْ يَجُزْ بَيْعُهَا﴾ او دده بیع جائز نه ده. وَمَعْنَاهُ ددې معنی داده. إِذَا كَانَ مَعَهَا وَلَدُهَا، چې ددې سره ددې بچې وی. أَمَّا دُخُولُ الْوَلَدِ فِي الْكِتَابَةِ فَلِمَا ذَكَرْنَاهُ.د بچی په کتابت کې داخلیدل په دې وجه دی.کوم چې موږ ذکر کړل. وَأَمَّا امْتِنَاعُ بَيْعِهَا پاتې شوه د ښځې د بیع ممنوع کیدل، فَلِأَنَّهَا تَبَعٌ لِلْوَلَدِ فِي هَذَا الْحُكْمِ نو دا په دې وجه دی.چه هغه په دې حکم کې د بچی تابع ده. قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی کریم ﷺ ارشاد فرمانیلې دې. {أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا}(۱) چې دا ښځه ددې بچی آزاده کړله.

**تشریح:** که مکاتب خپله ام ولد واخستله.نو ددې بچې به مکاتب سره کتابت کې داخلیږی.علامه مرغینانی رحمه الله فرمانی.چه دلته د ام ولد نه مراد مملوکه نه ده.بلکه د مکاتب ښځه مراد ده.کومه چې د غیر وینځه اود مکاتب بی بی ده.چه ددې سره د مکاتب د نطفې نه بچې دې.بهرحال دلته کې دوې (دوه) حکمونه ذکر شوی دی. ① یو داچه د ام ولد د اخستلو په صورت کې به بچې په کتابت کې داخلیږی. ② دوهم دا چې اوس مکاتب دده مور نشی خرڅولې.د بچی په کتابت کې د داخلیدلو وجه هم هغه ده.کومه چې د فصل په پیل کې تیره شوه. ﴿انه من أهل أن يكاتب و إن لم يكن من أهل الإعتاق﴾ او دده مور ځکه نشی خرڅولې.چه هغه د آزادئ په حق کې او د بیع په نه کیدلو کې د خوی تابع ده.ځکه نبی کریم ﷺ ارشاد فرمانیلې دې. ﴿أعتقها ولدها﴾ دا ددې بچی آزاده کړله. ﴿و قد تقدم في الإستيلاد﴾

**اعتراض:** تاج الشریعة دلته کې دا اعتراض ذکرکړې دې.چه هرکله د بچی لپاره حقیقی آزادی ثابته شی.نو

---

۱) تقدم تخریجه فی الإستیلاد_



دده د مور لپاره ازادی ثابتیږی.او دلته چونکه د بچی لپاره حق د ازادئ ثابت شوې دې.نو دده د مور لپاره حق د آزادئ ثابتیدل پکار نه دی.چه د بچی په نسبت د مور مرتبه کمول ښکاره شی ؟

**جواب:** دادې.چه د کتابت ډیر احکام دی.چه په دې کې یو د بیع عدم جواز هم دې.نو مور لپاره به دا حکم ثابتیږی.د کتابت د رتبه کمیدل ثابتولو دپاره.

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهَا وَلَدُهَا اوکه ددې سره بچې نه وی. فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله هم خواب دادې.د صاحبینو رحمهما الله په قول کې. لِأَنَّهَا أُمُّ وَلَدٍ ځکه چې دا په حقیقت کې ام ولد ده. وَلَهُ ددوی دلیل دادې. أَنَّ الْقِيَاسَ أَنْ يَجُوزَ بَيْعُهَا وَإِنْ كَانَ مَعَهَا وَلَدٌ چې قیاس هم دادې.چه ددې بیع جائز وی.اګرچه ددې سره بچې وی. لِأَنَّ كَسْبَ الْمُكَاتَبِ مَوْقُوفٌ ځکه چې د بچی مزدوری موقوف ده. فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ مَا لَا يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ،نو ددې سره ناقابل فسخ حکم نشی متعلق کیدې. إِلَّا أَنَّهُ يَثْبُتُ بِهَذَا الْحَقِّ فِيمَا إِذَا كَانَ مَعَهَا وَلَدٌ تَبَعًا لِثُبُوتِهِ فِي الْوَلَدِ بِنَاءً عَلَيْهِ، وَبِدُونِ الْوَلَدِ لَوْ ثَبَتَ ثَبَتَ ابْتِدَاءً وَخود بچې کیدلو په صورت کې دا حق په اتباع کې ثابت شو.په بچی کې ددې حکم ثابتیدلو په بناء باندې.که د بچی نه بغیر دا حق ثابت وی.نود ابتداء ځخه به مستقلاً ثابت وی. وَالْقِيَاسُ يَنْفِيهِ حالانکه قیاس ددې نفی کوی.

**تشریح:** ﴿وإن لم يكن معها....﴾ اوکه د مکاتب مذکوره ښځې سره د مکاتب نه پیدا شوې بچې ددې سره نه وی.نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز ددې حکم هم دادې.چه مکاتب دا ښځه نشی خرڅولې.ځکه چې دا ښځه په حقیقت کې دده ام ولد ده.اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په دې صورت کې ددې بیع جائز ده.او دلیل دادې.چه د قیاس مقتضاء هم دا وه.چه د بچی موجود کیدلو په صورت کې هم ددې بیع جائز وی.ځکه چې د مکاتب مزدوری فی الحال موقوف وی.که هغه بدل کتابت اداکړی.نو آزادیږی.او کومه مزدوری چې د بدل اداکاوه نه زیاته شی.هغه به ددې وی.او که هغه د بدل اداکولونه عاجز شی.نو غلام ارخ ته به واپس راځی.او کوم څه چې دده سره دی.هغه به د آقا وی.په دې وجه د ښځې په اخستلو سره دده نکاح نه فاسدیږی.او دده تبرعات ( احسانات) نه صحیح کیږی.( یعنی چا ته هبه وغیره ورکول).معلومه شوه.چه مکاتب ته حتمی قبضه حاصل نه ده.بلکه دده مزدوری موقوف ده.او هر موقوف قابل د فسخ وی.نو د مکاتب مزدوری هم قابل د فسخ شوه.او کوم شئ چې قابل د فسخ وی.هغې سره داسې حکم نه متعلق کیږی.کوم چې د فسخ قابل نه وی.لکه ام ولد کیدل، ځکه که هغه ددې سره متعلق شی.نو یا به د مکاتب مزدوری د څه احتمال نه بغیر فسخ کیږی.یا به ام ولد کیدل محتمل د فسخ وی.حالانکه په دې دواړو کې یو هم جائز نه ده.

بهرحال د قیاس تقاضه د بچی کیدلو په صورت کې هم داده.چه ددې ښځې بیع جائز وی.خو ددې سره د بچی موجود کیدلو په صورت کې د بیع ممتنع کیدلو حکم موږ ځکه ثابت کړې دې.چه په بچی کې دا حکم ثابت شی.نو ددې په وجه به دده په مور کې هم تبعاً دا حکم ثابتیږی.که د بچی نه بغیر هم دا حکم ثابت کړی شی.نو د ابتداء ځخه به مستقل طور باندې ثابت وی.حالانکه قیاس ددې نفی کوی.نو د بچی استحسان حکم به نه ثابتیږی.بلکه د قیاس حکم به وی.چه مکاتب دا خرڅولې شی.

﴿وَإِنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ مِنْ أَمَةٍ لَهُ﴾ که د مکاتب د وینځې نه دده بچې پیدا شو. ﴿دَخَلَ فِي كِتَابَتِهِ﴾ لِمَا بَيَّنَّا فِي الْمُشْتَرَى نو هغه به دده په کتابت کې داخلیږی.په هغه وجه کومه چې موږ بیان کړله.د اخستې شوی په اړه کې.

**تشریح:** که د مکاتب د وینځې نه دده بچې پیدا شو.نو بچې به دده په حکم کې داخلیږی.په ذکر شوی دلیل سره ﴿انه من أهل أن يكاتب وإن لم يكن من أهل الإعتاق﴾ نو ددې بچی حکم به د مکاتب پشان وی.آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.ښکاره داده.چه دلته کې د مکاتب وینځې سره دده زوې آزادیږی.

**سوال:** چې هرکله مکاتب ته نه د شب باشئ ( وینځې سره د شپې تیرولو) اختیار دې اونه ددې سره وطی کولې شی.نو د وینځې ځخه به دده بچې څنګه پیدا کیږی ؟ تردې چې هغه په کتابت کې داخل وی.

**جواب:** د شب باشئ اختیار نه کیدلو مطلب دادې.چه دده لپاره خپلې وینځې سره وطی کول حلال نه دی.

خود آزاد سړی پشان دده هم د مكاتبه په ملك كي يو ډول قبضه ده.اود دعوه په وخت د نسب د ثبوت لپاره دومره خبره كافي ده.نوكه ده وطی اوكړله.اود نسب دعوه ئې اوكړلـه.نو اګرچه وطی دده لپاره حلال نه ده.البته نسب ثابتیږي.لكه څنګه چې په مشترك وينځه كي دی.چه د يو شريك لپاره هم وطی حلال نه ده.خوكه اوكړي.اود بچی د زیږیدل نه روسته د نسب دعوه اوكړي.نو نسب ثابتيږي.دغه ډول كه د خوی وينځي سره پلار وطی اوكړي.او د بچی دعوه ئې اوكړله.نو نسب ثابتيږي.

**فائده**۞ بيا په ذكرشوی صورت كي به دا وينځه د مكاتب ام ولد وي.اوكه نه؟ په دې كي اختلاف دي.په دې اړه كي د امام شافعي رحمه الله دوې (دوه) قوله دی.① يو داچه ام ولد جوړيږي.د صاحبينو رحمهما الله او د امام احمد رحمه الله قول هم دادي.② دوهم قول دادې.چه ام ولد نه جوړيږي.د امام ابوحنيفه، امام مالك رحمهما الله او په يو روايت كي د امام احمد رحمه الله قول هم دادي.

(وَكَانَ حُكْمُهُ كَحُكْمِهِ) نو دده حكم به د مكاتب پشان شي.(وَكَسْبُهُ لَهُ) او د بچی مزدوری به مكاتب لپاره وي.لِأَنَّ كَسْبَ الْوَلَدِ كَسْبُهُ خكه چې د بچی مزدوری د مكاتب د مزدوریٔ ګڼه ده.وَيَكُونُ كَذَلِكَ قَبْلَ الدَّعْوَةِ او د نسب د دعوه نه وړاندې هم داسې وو.فَلَا يَنْقَطِعُ بِالدَّعْوَةِ اخْتِصَاصُهُ،نو په دعوه كاوه سره به د مزدوریٔ اختصاص نه منقطع كيږي.

**تشريح:** اودا بچې چې كوم څه اوګټي.هغه به د مكاتب وي.خكه چې ددې بچي مزدوري د مكاتب مزدوري ده.يعنی مكاتب دا بچې ګټلي دي.او بچی مال اوګټلو.بيا تركومه پورې چې مكاتب دده د نسب دعوه نه وه كړې.هغه وخته پورې دده مزدوري د مكاتب وه.نود نسب دعوه كاوه سره به هم د مزدوریٔ اختصاص نه منقطع كيږي.مطلب دادې.چه دا بچې د مكاتب د غلام په حكم كي دې.نو لكه څنګه چې د نسب د دعوه نه وړاندې دده مزدوری مكاتب لپاره وه.هم دغه ډول به د نسب د دعوه نه روسته هم دده وي.

وَكَذَلِكَ إِنْ وَلَدَتِ الْمُكَاتَبَةُ وَلَدًا دغه ډول كه مكاتبه څه بچې راوړلو.لِأَنَّ حَقَّ امْتِنَاعِ الْبَيْعِ ثَابِتٌ فِيهَا مُؤَكَّدًا خكه چې د بيع ممتنع كيدلو حق په دې مكاتبه كي تاكيد سره ثابت دې.فَيَسْرِي إِلَى الْوَلَدِ كَالتَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ نو ددې په اولاد كي به هم خوريږي.لكه مدبر كيدل او ام ولد كيدل.

**تشريح:** دغه ډول كه د مكاتبه وينځي بچې پيدا شو.اګرچه په حلال طريقه وي.اوكه په حرام طريقه وي.نو دا بچې به هم دده په كتابت كي داخل وي.آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.وجه داده.چه د بيع ممتنع كيدلو حق په دې مكاتبه كي تاكيد سره ثابت دې.نودا د اوصاف قاره شرعيه څخې شو.نودا حق به دده په اولاد كي هم خوريږي.لكه مدبر كيدل، او ام ولد كيدل چې اولاد كي هم خوريږي.بيا علامه مرغيناني رحمه الله د مؤكد قيد لګولو سره د آبقه (تختيدلې) وينځي د بچی نه احتراز كړې دې.چه د تختيدلې وينځي بيع جائز نه ده.او ددې د بچی بيع جائز ده.خكه چې په تختيدلې وينځه كي د بيع منع كاوه تاكيد نشته.خكه چې د اباق (تختيدلو) وصف دائمی او هميشه نه دې. ﴿فلا يسرى إلى الولد﴾

## خپلې وينځې سره د خپل مكاتب غلام واده كولو سره د بچې حكم

قَالَ (وَمَنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ مِنْ عَبْدِهِ كه يوكس دخپلې وينځې نكاح خپل غلام سره اوكړلـه.ثُمَّ كَاتَبَهُمَا بيا ئې دوی دواړه مكاتب كړل.فَوَلَدَتْ مِنْهُ وَلَدًا او وينځې دده نه بچې راوړلو.دَخَلَ فِي كِتَابَتِهَا نو دا بچې به د وينځې په كتابت كي داخل وي.وَكَانَ كَسْبُهَا) او د بچی ګټه به دده د مور لپاره وي.لِأَنَّ تَبَعِيَّةَ الْأُمِّ أَرْجَحُ خكه چې د مور تابع كيدل زيات راجح دی.وَلِهَذَا يَتْبَعُهَا فِي الرِّقِّ وَالْحُرِّيَّةِ په دې وجه بچې په آزادیٔ او غلامیٔ كي د مور تابع وي.

**تشريح:** كه آقا د خپلې وينځې واده خپل يو غلام سره اوكړله.بيا ئې دواړه مكاتب كړل.بيا ددې نه بچې پيدا



شو.نو بچې به د مور په كتابت كي داخل وي.او ددې بچي مزدوري به هم مور ته ملاويږي.خكه چې د مور تابع كيدلو تله درنه ده.په دې وجه بچې په آزادیٔ او غلامیٔ كي د مور تابع وي.يعنی كه مور د يوكس په قبضه كي وي.نو بچې به هم دهغه په ملك كي وي.اګرچه پلار آزاد وي.او كه مور آزاده ښځه وي.نو بچې به هم آزاد وي.اګرچه پلار د يوكس غلام وي.نو په آزادیٔ او غلامیٔ كي بچې د خپلې مور او په نسب كي د پلار تابع وي.

قَالَ (وَإِنْ تَزَوَّجَ الْمُكَاتَبُ بِإِذْنِ مَوْلَاهُ امْرَأَةً خو مكاتب د آقا په اجازت سره داسې ښځې سره نكاح اوكړله.زَعَمَتْ أَنَّهَا حُرَّةٌ چې هغه خپل خان ته آزاده وائی.فَوَلَدَتْ مِنْهُ ود هغې نه ئې اولاد اوشو.ثُمَّ اسْتُحِقَّتْ بيا ښځه مستحقه ثابته شوه.فَأَوْلَادُهَا عَبِيدٌ نو ددې واړه اولاد به مملوك وي.وَلَا يَأْخُذُهُمْ بِالْقِيمَةِ، او دا په قيمت نشی اخستلې.وَكَذَلِكَ الْعَبْدُ يَأْذَنُ لَهُ الْمَوْلَى بِالتَّزْوِيجِ، دغه ډول د غلام حكم دې.چه هغه ته آقا د نكاح اجازت وركړې وي.وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ(¹) اودا د شيخينو رحمهما الله په نيز دی.وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائی أَوْلَادُهَا أَحْرَارٌ بِالْقِيمَةِ) چې ددې اولاد په قيمت سره آزاديږي.

**تشريح:** كه مكاتب يا عبد ماذون د خپل آقا په اجازت سره يوې داسې ښځې سره نكاح اوكړله.چه هغه خپل خان ته آزاده وائي.او د هغې نه اولاد هم اوشو.روسته دا ښځه د چا مملوكه (وينځه) اوختله.نو اولاد به هم ددغه ښځې د مالك مملوك وي.او د شيخينو رحمهما الله په نيز مكاتب يا عبد ماذون اولاد په قيمت وركاوه سره نشی اخستلې.د امام محمد، امام زفر اود آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز په قيمت وركاوه سره اخستلې شی.يعنی د مكاتب يا د غلام اولاد واړه به په قيمت سره آزاديږي.

**فائده**۞ زموږ اكثرو اصحابو د امام ابويوسف رحمه الله قول د امام ابوحنيفه رحمه الله سره ذكركړې دې.او فقيه ابوالليث رحمه الله ددوی قول امام محمد رحمه الله سره ذكركړې دې.خو زيات صحيح هم داده.كوم چې جمهورو ذكركړې دی.خكه چې د امام ابويوسف رحمه الله مرجوع اليه قول هم دادې.لكه څنګه چې ابو الحسين قدوری رحمه الله په كتاب التقريب كي صراحت كړې دې.

لِأَنَّهُ شَارَكَ الْحُرَّ فِي سَبَبِ ثُبُوتِ هَذَا الْحَقِّ خكه چې هغه ددې حق د ثبوت په سبب كي د آزاد شريك شو.وَهُوَ الْغُرُورُ، او هغه سبب دهوكه ده.وَهَذَا لِأَنَّهُ مَا رَغِبَ فِي نِكَاحِهَا إِلَّا لِيَنَالَ حُرِّيَّةَ الْأَوْلَادِ، وجه داده.چه مكاتب ددې ښځې سره د نكاح رغبت (او شوق) نه دې كړې.خو ددې لپاره چې د اولاد آزدی حاصله كړي.

**تشريح:** د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه دا مكاتب يا عبد ماذون ته دهوكه وركړې شوې ده.نو ددوی اولاد به په قيمت سره ازاديږي.ددې تشريح داده.چه مذكوره حق يعنی اولاد په قيمت سره د آزاديدلو په سبب يعنی دهوكه كي دا مكاتب د آزاد سړی سره شريك شو.خكه چې مكاتب ددې ښځې سره د نكاح شوق صرف ددې لپاره كړې وو.چه د آزاد اولاد شرافت حاصل شی.نو لكه څنګه چې يو آزاد سړې د يوې ښځې سره د آزاديدلو په دهوكه كي نكاح اوكړي.بيا دا د چا مملوكه اوخيژي.نو اولاد په قيمت سره آزاديږي.دغه ډول د مكاتب اولاد به هم په قيمت سره آزاد وي.خكه چې ده ته هم دهوكه وركړې شوې ده.نو دلته د آزادیٔ سبب صرف دهوكه ده.او په دې سبب كي مكاتب او آزاد دواړه برابر شريك دی.

وَلَهُمَا شيخينو رحمهما الله دليل دادې.أَنَّهُ مَوْلُودٌ بَيْنَ رَقِيقَيْنِ چې دا اولاد د دوې (دوه) مملوكانو په منځ كي پيدا شوې دې.فَيَكُونُ رَقِيقًا، نودا به هم غلام وي.

(¹) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فى كنز الدقائق (۳۲۶) وملتقى الأبحر(۱۲\۴) وردالمحتار (۷۲\۵) ومجمع الأنهر(۱۲\۴) نقلاً عن القول الراجح (۲۴۱\۲)

**تشریح:** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې چه اولاد د دوي (دوه) رقیقانو (غلامانو) په منځ کي پیدا شوي دي یعني پلار هم مملوك دې (ځکه چې دې ترکومه پورې کتابت کې وی نو غلام وی) او مور هم مملوك ده. (ځکه چې د استحقاق د ثبوت په وجه ددې رقیت (مملوکیت) ښکاره شې) نو اولاد به هم مملوك وی.

**وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَصْلَ** او دا ځکه چې اصل دادې. **أَنَّ الْوَلَدَ يَتْبَعُ الْأُمَّ فِي الرِّقِّ وَالْحُرِّيَّةِ** چې بچې په غلامئ او آزادئ کي د مور تابع وی.

**تشریح:** یعني مذکوره حکم ځکه دې چه اصل هم دا ګرځولې شوي دې چه بچې په آزادئ او غلامئ کې خپلې مور تابع وی. خو په دهوکه کیدلو سره د آزادئ په صورت کې مور ددې اصل خلاف د اصحابو رضي الله عنهم د اجماع په وجه کړې ده. او دلته په مکاتب او غلام کې دا خبره نشته. تردې چې دې د آزادئ سره ملاؤ کړې شي. اود صحابو رضي الله عنهم د اجماع په وجه قیاس ځکه پریخودلې شوي دي. چه د آزادئ په صورت کې د وینځې د آقا کوم حق په دې اولاد کې وو. هغه په نقد قیمت ور کاوه سره پوره کولې شی. ځکه چې آزاد سړې د هر شي مالك وی. او مکاتب او غلام اوس لا د هیڅ شي مالك نه دې. اود مکاتب د او د غلام په صورت کې ددې حق په بدله کې داسې قیمت ملاویدې شی. چه دا به ددوی د آزادیدلو نه روسته اداکیږی. نودا ددې په معنی کې نشو. نو دلته به حکم د اصل قیاس موافق پاتې وی. یعني اولاد به قیمت سره نه آزادیږی.

**وَخَالَفْنَا هٰذَا الْأَصْلَ فِي الْحُرِّ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ** او د آزاد په حق کې مور ددې اصل خلاف د صحابو رضي الله عنهم د اجماع په وجه دا ونیلی دی. **وَهٰذَا لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ** چې دا ددې په معنی کې نه دې. **لِأَنَّ حَقَّ الْمَوْلٰى هُنَاكَ مَجْبُورٌ بِقِيمَةٍ نَاجِزَةٍ** ځکه چې هلته کې د آقا حق په نقد قیمت سره پوره کولې شی. **وَهٰهُنَا بِقِيمَةٍ مُتَأَخِّرَةٍ إِلٰى مَا بَعْدَ الْعِتْقِ** او دلته کې په داسې قیمت سره پوره کولې شی. چه دا به د ازادئ نه روسته اداکولې شی. **فَيَبْقٰى عَلَى الْأَصْلِ وَلَا يَلْحَقُ بِهِ** نو دلته به حکم اصل باندې پاته وی. او مکاتب سره به نشی ملاوولې.

**تشریح:** علامه عیني رحمه الله فرمائي. چه د صحابو رضي الله عنهم د اجماع دعوه محل نظر ده. ځکه چې په دې اره کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف ثابت دې. لکه چې ابن ابی شیبه په مصنف کې د حضرت علي رضي الله عنه نه روایت کړې دې. «في رجل إشترى جارية فولدت منه أولاداً ثم أقام رجل البينة أنها له قال ترد عليه و تقوم عليه ولدها فيغرم الذى باعها ما غرها» دغه ډول د سلیمان بن یسار نه روایت دې. «إن أمة أتت قوماً فغرتهم و زعمت أنها حرة فتزوجها رجل فولدت لـه أولاداً فوجدها أمة فقضى عمر رضي الله عنه بقيمة أولادها فى كل مغرور غرة» د حضرت عثمان رضي الله عنه نه هم دغه ډول روایت نقل دې.

### وینځې سره د مکاتب یا عبد ماذون د وطې حکم

**قَالَ (وَإِنْ وَطِئَ الْمُكَاتَبُ أَمَةً عَلٰى وَجْهِ الْمِلْكِ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَوْلٰى** که مکاتب وطې اوکړله. یوې وینځې سره د ملك په طور باندې. د آقا د اجازت نه بغیر. **ثُمَّ اسْتَحَقَّهَا رَجُلٌ** بیا څوك سړې ددې مستحق راؤ وتلو. **فَعَلَيْهِ الْعُقْرُ** نو په مکاتب به مهر واجب وی. **يُؤْخَذُ بِهِ فِي الْكِتَابَةِ** چې ددې ادا کول به په حالت د کتابت کې کیږی. **وَإِنْ وَطِئَهَا عَلٰى وَجْهِ النِّكَاحِ** او که د نکاح په طور نې وطې اوکړله. **لَمْ يُؤْخَذْ بِهِ** نو عقر یعني مهر به نشی اخستلې. **حَتّٰى يَعْتَقَ** تردې چې هغه آزاد شی. **وَكَذٰلِكَ الْمَأْذُونُ لَهُ)** او هم دغه ډول عبد ماذون دې. **وَوَجْهُ الْفَرْقِ** وجه د توپیر داده. **أَنَّ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ ظَهَرَ الدَّيْنُ فِي حَقِّ الْمَوْلٰى** چې په ړومبی صورت کې دین د آقا په حق کې ښکاره شو. **لِأَنَّ التِّجَارَةَ وَتَوَابِعَهَا دَاخِلَةٌ تَحْتَ الْكِتَابَةِ** ځکه چې تجارت او ددې توابع د کتابت لاندې داخل دی. **وَهٰذَا الْعُقْرُ مِنْ تَوَابِعِهَا** اودا عقر د تجارت د توابع څخه دې. **لِأَنَّهُ لَوْلَا الشِّرَاءُ** ځکه که اخستل نه وې. **لَمَا سَقَطَ الْحَدُّ** نو حد د زنا به نه ساقطیدلو. **وَمَا لَمْ يَسْقُطِ الْحَدُّ** او ترکومه پورې چې حد ساقط نشی. **لَا يَجِبُ الْعُقْرُ** عقر نه واجبیږی. **أَمَّا لَمْ يَظْهَرْ فِي الْفَصْلِ الثَّانِي** خو په دوهم صورت کې دین ښکاره نشو. **لِأَنَّ النِّكَاحَ لَيْسَ مِنَ الْاِكْتِسَابِ فِي شَيْءٍ** ځکه چې نکاح د اکتساب (مزدورئ) څخه نه ده. **فَلَا تَنْتَظِمُهُ الْكِتَابَةُ كَالْكَفَالَةِ** نود کفالت پشان به کتابت ده ته ګډ نه



وی.

**تشریح:** مکاتب یا عبد ماذون یوه وینځه واخستله او دا خیال ئې اوکړو چه ما واخستله نو هم زما ده. او ددې سره ئې صحبت (مجامعت) اوکړو. بیا وینځه د بل چا (مستحق) اوختله. نو په مکاتب او عبد ماذون باندې عقر یعني ددې وطې عوض مهر فی الحال واجب وی. آزادئ پورې به نه مؤخر کیږی. که وینځې سره ئې نکاح کړې وی. او وطې ئې کړې وی. نو عوض مهر به د آزادئ نه روسته ورکوی.

وجه د توپیر داده. چه د اخستلو په صورت کې دین مهر د آقا په حق کې ښکاره شو. په دې وجه چې تجارت او توابع د تجارت یعني ملمستیا وغیره واړه په عقد کې داخل دی. او عقر (مهر) هم د تجارت د توابع څخه دې. ځکه که شراء او اخستل نه وو. نو دده د ذمې څخه به حد زنا نه ساقطیدلو. او ترکومه پورې چې حد زنا نه ساقطیږی. هغې پورې مهر هم نه واجبیږی. په خلاف د نکاح. چې د نکاح په صورت کې دین مهر د آقا په حق کې ښکاره نشو. ځکه چې نکاح د مزدورئ د قبیلې څخنې نه ده. نو عقد کتابت نکاح ته ګډ نشوه. لکه څنګه چې کفالت کاوه ته نه شاملیږی. لکه که مکاتب د یو سړی مالی کفالت قبول کړو. نو په دې سره د مال دعوه فی الحال نشی کیدې. ترکومه پورې چې آزاد نشی. ځکه چې دا په عقد کتابت کې داخل نه دې. نو عوض مهر به د ازادئ نه روسته ورکولې شی.

**قوله: بغیر اذن المولی** ا قید ځکه لګولې شوي دې. چه په دې سره د آقا د اجازت په صورت کې ددې حکم فائده ښکاره شی. چه د اجازت په صورت کې به عقر (مهر) اخستل په طریقه اولی وی. او که دا وینځه ماذون بالنکاح وی. او نکاح کاوه سره وطې اوکړی. نو دده څخه به د مهر مطالبه فی الحال کیږی. او که ماذون بالنکاح نه وی. نو مطالبه به فی الحال نه کیږی. بلکه د آزادئ نه روسته پورې به مؤخر کولې شی.

**قَالَ (وَإِذَا اشْتَرَى الْمُكَاتَبُ جَارِيَةً شِرَاءً فَاسِدًا** که مکاتب د شراء فاسد په طور وینځه واخستله. **ثُمَّ وَطِئَهَا** ددې سره نې وطې اوکړله. **فَرَدَّهَا** بیا ئې دا واپس کړله. **أُخِذَ بِالْعُقْرِ فِي الْمُكَاتَبَةِ** نو عقر (مهر) به د مکاتبت په حالت کې اخستلې شی. **وَكَذٰلِكَ الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ)** دغه ډول عبد ماذون دې. **لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ التِّجَارَةِ** ځکه چې دا د باب د تجارت څخنې دې. **فَإِنَّ التَّصَرُّفَ تَارَةً يَقَعُ صَحِيحًا وَمَرَّةً يَقَعُ فَاسِدًا** ځکه چې تصرف کله صحیح او کله فاسد واقع کیږی. **وَالْكِتَابَةُ وَالْإِذْنُ يَنْتَظِمَانِهِ بِنَوْعَيْهِ كَالتَّوْكِيلِ** او اذن او کتابت دواړو قسمونو ته ګډ دې. لکه څنګه چې په وکیل کاوه کې دی. **فَكَانَ ظَاهِرًا فِي حَقِّ الْمَوْلٰى** نودا به د آقا په حق کې هم ښکاره کیږی.

**تشریح:** که مکاتب یا عبد ماذون وینځه د شراء فاسد په طریقه واخستله او ددې سره ئې وطې اوکړله بیا دا دعقد د فساد په وجه مالك ته واپس کړې شوه. نو عوض مهر به فی الحال واجب وی. ځکه چې فاسد اخستل هم د تجارت یو ډول دې. ځکه چې تصرف کله صحیح واقع کیږی. او کله فاسد، او کتابت او د تجارت اجازت د تصرف دې دواړو قسمونو ته ګډ دې. لکه څنګه چې توکیل کې کیږی. چه وکیل مطلق ته د صحیح تصرف او فاسد تصرف د هر یو اختیار وی. نو ګویا آقا ددې اجازت ورکړو. نودا تاوان به د آقا په حق کې هم ښکاره وی.

### د مکاتبه وینځې او ددې د بچې حکم

**(فَصْلٌ): قَالَ (وَإِذَا وَلَدَتِ الْمُكَاتَبَةُ مِنَ الْمَوْلٰى** که مکاتبه (وینځې) بچې راوړو. د آقا نه. **فَهِيَ بِالْخِيَارِ** نو دې ته اختیار دې. **إِنْ شَاءَتْ مَضَتْ عَلَى الْكِتَابَةِ** که غواړی. کتابت دې پوره کړی. **وَإِنْ شَاءَتْ عَجَّزَتْ نَفْسَهَا** و که غواړی. خپل ځان دې عاجز کړی. **وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ)** و دده ام ولد دې شی. **لِأَنَّهَا تَلَقَّتْهَا جِهَتَا حُرِّيَّةٍ** ځکه چې دې ته د آزادئ دوې (دوه) جهته حاصل شو. **عَاجِلَةٌ بِبَدَلٍ وَآجِلَةٌ بِغَيْرِ بَدَلٍ** یود بدل په ذریعه فی الفور آزادی، او یو د بدل نه بغیر مؤخر آزادی. **فَتُخَيَّرُ بَيْنَهُمَا** نو دې ته به په دواړو کې اختیار وی.

تشریح: آقا خپله وینځه مکاتبه کړله او د هغې نه ئې بچی پیدا شو. نو وینځې ته اختیار دی، که غواړي عقد کتابت باندې دې پاته اوساتي او بدل کتابت دې اداکړي او في الحال دې آزاد شي، اوکه غواړي خپل ځان دې عاجزه کړي او ام ولد دې شي. اود آقا د مرګ نه روسته به آزاده شي. وجه د اختیار داده، چه دې ته په دوي (دوه) وجو سره د آزادئ حق حاصل شو. یود کتابت په جهت سره، او یو د ام ولد کیدلو په جهت سره. نو دې ته به د دواړو اختیار وي.

| |
|---|
| وَنَسَبُ وَلَدِهَا ثَابِتٌ مِنَ الْمَوْلٰى او ددې د بچي نسب به ددې د آقا نه ثابت وي. وَهُوَ حُرٌّ او هغه به آزاد وي. لِأَنَّ الْمَوْلٰى يَمْلِكُ الْإِعْتَاقَ فِيْ وَلَدِهَا ځکه چې آقا ته ددې د بچي آزادولو اختیار حاصل دی. |

تشریح: د مکاتبهٔ مذکوره د بچي نسب به د آقا نه ثابتیږي، که دده زیږیدل په شپږمه میاشت شوي وي. او که ددې نه په زیات موده کي شوي وي. او دا بچي به آزاد وي. په دې کي هیڅ اختلاف نشته. وجه داده، چه آقا ددې بچي آزادولي شي. ځکه چې د آقا د اړخه دنسب دعوه د آزادئ پشان ده. او هرکله چې آقا په قصد سره دا بچي ازادولي شي، چه دا پخپله دده د نطفې نه نه دې پیدا شوي. نود نسب د دعوه په ضمن کي به په طریقهٔ اولی کولي شي.

| |
|---|
| وَمَالَهُ مِنَ الْمِلْكِ يَكْفِيْ لِصِحَّةِ الْاِسْتِيْلَادِ بِالدَّعْوَةِ او د آقا چې کوم ملك دی. هغه د ام ولد کیدو د دعوې د صحت لپاره کافي دی. |

تشریح: لفظ د ،،ماله،، په فتح د لام دی ،،ای والذی له،، او ،،من الملك،، د ما بیان دی. په دې قول سره د علامه مرغیناني رحمه الله مقصد د یو وهم ازاله ده وهم دا کیږي چه په مکاتبه کي کوم چې د آقا ملك دی. هغه ناقص دی. نو دده د اړخه د نسب دعوه صحیح کیدل پکار دي. موصوف فرماني چه آقا ته په مکاتبه وینځه کي کوم ملك رقبه حاصل دې. هغه د ام ولد کیدو د دعوې د صحت لپاره کافي دی. اګرچه ده ته مکمل قبضه حاصل نه وي. وجه ددې داده. چه د آقا دا ملك بهرحال دهغه ملك نه زیات مضبوط دی. کوم چې مکاتب ته پخپله مکاتبه کي حاصل وي. ددې دلیل په وجه د آقا خپله مکاتبه آزادول صحیح دی. اود مکاتب آزادول صحیح نه دي. او مسئله داده. که مکاتب د خپلې مکاتبهٔ د بچي د نسب دعوه اوکړي. نو دده نه نسب ثابتیږي. نو هرکله چې آقا د نسب مدعي وي. نو په طریقهٔ اولی به ثابتیږي.

| |
|---|
| وَإِذَا مَضَتْ عَلَى الْكِتَابَةِ اوس که مکاتبهٔ کتابت پوره کړو. أَخَذَتِ الْعُقْرَ مِنْ مَوْلَاهَا نو آقا نه دې خپل عوض مهر واخلي. لِاخْتِصَاصِهَا بِنَفْسِهَا وَبِمَنَافِعِهَا عَلٰى مَا قَدَّمْنَا. ځکه چې دې ته د خپل ذات او منافعو اختصاص حاصل دی لکه چې مونږ وړاندې ذکر کړي دي. |

تشریح: د مسئلې په پیل کي دا خبره معلومه شوې وه. چه مذکوره مکاتبهٔ ته دوي (دوه) اختیاره دي. که غواړي په عقد کتابت دې پاتې شي او که غواړي ام ولد دې اوسیږي. اوس که دې رومبي صورت اختیار کړو. یعنی بدل کتابت اداکول او في الحال آزادیدل ئې اوغوښتل نو هغه به د آقا نه عقر یعنی مهر مثل وصولوي. امام مالك او امام احمد رحمهما الله او په یو قول کي امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دي. دلیل هم هغه دې. کوم چې د کتابت فاسده د فصل نه لږ وړاندې تیر شو. «لما صارت اخص باجزائها» چه مکاتبه مذکوره ته د خپل ذات او خپلو منافعو اختصاص حاصل دی.

| |
|---|
| ثُمَّ إِنْ مَاتَ الْمَوْلٰى بیا که آقا مړشي. عَتَقَتْ بِالْاِسْتِيْلَادِ نو هغه د ام ولد کیدلو په وجه آزادیږي. وَسَقَطَ عَنْهَا بَدَلُ الْكِتَابَةِ. او عوض به ددې د ذمې نه ساقطیږي. |

تشریح: مذکوره مکاتبهٔ په عقد کتابت باندې پاته پاتې کیدل اختیار کړل. اود بدل کتابت ادا کاوه نه وړاندې د آقا انتقال اوشو. نو هغه د ام ولد کیدلو په وجه آزادیږي. او دده د ذمې نه بدل کتابت ساقطیږي. چه په دې کي هیڅ اختلاف نشته. ځکه چې مکاتبهٔ د مال التزام ځکه کړي وو. چه ددې رقبه دې ته د کتابت په جهت



سره سلامت ملاؤ شي. حالانکه دلته په دې جهت سره ملاؤ نشو. نو بدل به واجب نه وي.

| |
|---|
| وَإِنْ مَاتَتْ هِيَ او که هغه پخپله مړه شوه. وَتَرَكَتْ مَالًا او څه مال (ترکه) ئې پرېښولو. تُؤَدّٰى مِنْهُ مُكَاتَبَتُهَا نو ددې څخه به بدل کتابت اداکولې شي. وَمَا بَقِيَ مِيْرَاثٌ لِابْنِهَا جَرْيًا عَلٰى مُوْجَبِ الْكِتَابَةِ. او کوم چې پاته پاتې شي. هغه به ددې د بچي لپاره میراث وي. د کتابت د تقاضې په وجه. وَإِنْ لَمْ تَتْرُكْ مَالًا او که دې هیڅ مال پرې نخودلو. فَلَا سِعَايَةَ عَلَى الْوَلَدِ نو په بچي به سعایت (مزدوري) نه وي. لِأَنَّهُ حُرٌّ ځکه چې هغه آزاد دی. |

تشریح: او که د آقا نه وړاندې مکاتبه وینځه پخپله مړه شوه. او دې څه مال پرېښولو. نو ددې مال څخه به ددې بدل کتابت اداکولې شي. اود بدل کتابت ادا کاوه نه روسته چې کوم مال پاته پاتې شي. هغه د کتابت په تقاضې باندې عمل کاوه سره ددې د بچي لپاره میراث وي. (د امام احمد رحمه الله په نیز او په یو قول کي د امام شافعي رحمه الله په نیز کوم څه چې د مکاتبهٔ په قبضه کي وي. هغه به د آقا وي). او که دې هیڅ مال (ترکه) پرې نخودله. نود بچي په ذمه به سعایت یعنی مزدوري نه وي. ځکه چې هغه آزاد دی.

| |
|---|
| وَلَوْ وَلَدَتْ وَلَدًا آخَرَ او که ددې بل بچی پیدا شو. لَمْ يَلْزَمِ الْمَوْلٰى إِلَّا أَنْ يَّدَّعِيَ نو هغه به د آقا په ذمه لازم نه وي. مګر دا چې هغه دعوه اوکړي. لِحُرْمَةِ وَطْئِهَا عَلَيْهِ. ځکه چې آقا باندې د مکاتبهٔ وطی حرام ده. فَلَوْ لَمْ يَدَّعِ اوس که آقا د بچي دعوه اونکړله. وَمَاتَتْ مِنْ غَيْرِ وَفَاءٍ او مکاتبهٔ د څه (مال) پرېښولو نه بغیر مړه شوه. سَعٰى هٰذَا الْوَلَدُ نو دا دوهم بچی به سعایت (مزدوري) کوي. لِأَنَّهُ مُكَاتَبٌ تَبَعًا لَهَا. ځکه چې هغه دمور اتباع کي مکاتب دی. فَلَوْ مَاتَ الْمَوْلٰى بَعْدَ ذٰلِكَ بیا که ددې نه روسته آقا مړشي. عَتَقَ نو بچی به آزاد وي. وَبَطَلَ عَنْهُ السِّعَايَةُ او دده د ذې څخه به سعایت ساقطیږي. لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ أُمِّ الْوَلَدِ ځکه چې دا بچی په مرتبه د ولد دی. إِذْ هُوَ وَلَدُهَا فَيَتْبَعُهَا ځکه چې دا د ام ولد بچی دی. نو هم د هغې تابع به وي. |

تشریح: که مذکوره مکاتبه د یو بچي نه روسته بل بچی راوړي. نو د آقا په ذمه به (دده د سکوت په صورت کي) لازم نه وي. ځکه چې د ام ولد د بچي د نسب د خاموش پاتې کیدلو په صورت کي هغه وخت ثابتیږي. کله چې آقا لپاره ددې سره وطی کول حلال وي. حالانکه هغه دلته داسې ام ولد ده. چه آقا لپاره ددې سره وطی کول حلال نه ده. بلکه حرام ده. او په دې وجه د آقا د اړخه د نسب دعوه کیدل ضروري دي. ددې نه بغیر به دا دوهم بچی دده په ذمه لازم نه وي. اوس که دده د دوهم بچي د نسب دعوه اونکړله. او مذکوره مکاتبهٔ د بدل کتابت برابر مال پرېښولو نه بغیر مړه شوه. نودا دوهم بچی به د بدل کتابت ادا کاوه لپاره سعایت (مزدوري) کوي. ځکه چې دې د خپلې مور تابع کیدلو په وجه مکاتب دی. بیا که د مکاتبهٔ د مرګ نه روسته د بدل کتابت اداکولونه وړاندې آقا مړ شو. نودا دوهم بچی به آزادیږي. او دده د ذمې څخه به سعایت ساقطیږي. ځکه چې دا بچی په مرتبه د ام ولد دی. ځکه چې دا د ام ولد بچی دی. نو د هغې تابع به وي. نو لکه څنګه چې د آقا د مرګ نه روسته ام ولد سعایت (مزدوري) نه کوي. دغه ډول به دا بچی هم مزدوري نه کوي.

## د ام ولد د مکاتبه جوړولو حکم

| |
|---|
| قَالَ: (وَإِذَا كَاتَبَ الْمَوْلٰى أُمَّ وَلَدِهِ جَازَ) که آقا خپله ام ولد مکاتب کړله. نو جائز ده. لِحَاجَتِهَا إِلَى اسْتِفَادَةِ الْحُرِّيَّةِ قَبْلَ مَوْتِ الْمَوْلٰى ځکه چې دې ته د خپل آقا د مرګ نه وړاندې د آزادئ حاصلولو اړتیا دی. وَذٰلِكَ بِالْكِتَابَةِ، اودا په کتابت سره حاصلیږي. وَلَا تَنَافِيَ بَيْنَهُمَا او په دې دواړو کي هیڅ منافات نشته. لِأَنَّهُ تَلَقَّتْهَا جِهَتَا حُرِّيَّةٍ ځکه چې ده ته د آزادئ دوي (دوه) جهتونه حاصل دي. |

تشریح: که آقا خپله ام ولد مکاتبه کړله. نو کتابت جائز دی. ځکه چې ام ولد د آقا د مرګ نه روسته آزادیدونکې ده. البته ددې نه وړاندې هم دې ته د آزادیدلو اړتیا دی. اودا خبره به د کتابت په ذریعه حاصلیږي. بیا په کتابت او ام ولد کي هیڅ منافات نشته. ځکه چې ام ولد د آزادئ دوي (دوه) جهته حاصل

کړي دي نو کتابت به صحيح وي.

**سوال:** دا وئيل غلط دي چه په کتابت او استيلاد کي هيڅ منافات نشته. منافات موجود دي.ځکه چي په دي کي د يو يعني د کتابت تقاضه داده. چه آزادي د بدل په ذريعه وي. او د دوهم يعني د استيلاد تقاضه داده. چه آزادئ د بدل نه بغير وي. او ښکاره ده. چه عتق واحد په دي دواړو سره نشي ثابتيدلي ،،فكانا متنافيين،،

**جواب:** منافات ځکه نشته.چه کتابت او استيلاد د عتق دوي (دوه) جهتونه دي.چه دا ام ولد ته د بدل په طريقه حاصل شوي دي.

**سوال:** قياس هم دا غواړي.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ام ولد مكاتب كول جائز كيدل پكار نه دي.ځکه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ام ولد ماليت متقوم نه دي.نو ددي په مقابله کي قيمتي بدل څنګه کيداي شي ؟

**جواب:** آقا لپاره دده په ام ولد کي ملك يد او ملك رقبه دواړه حاصليږي.او عقد کتابت في الحال د قبضي اوچتولو لپاره وي.او في المال د ملك رقبة اوچتولو لپاره وي.او ملك داسي شئ دي.چه ددي په مقابله کي قيمتي بدل راتلي شي.اګرچه هغه پخپله متقوم نه وي.لکه څنګه چي ملك د قصاص دي.که بعض اولياء مقتول معاف کړي.نو د پاته نورو د برخي (حصي) په مقابله کي مال راځي.

**(فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى)** بيا که آقا مړ شو. **عَتَقَتْ بِالِاسْتِيلَادِ** نو د ام ولد کيدلو په وجه به آزاده وي. **لِتَعَلُّقِ عِتْقِهَا بِمَوْتِ السَّيِّدِ** آقا په مرګ سره ددي د آزادئ متعلق کيدلو په وجه. **(وَسَقَطَ عَنْهَا بَدَلُ الْكِتَابَةِ)** او ددي څخه به بدل کتابت ساقطيږي. **لِأَنَّ الْغَرَضَ مِنْ إِيجَابِ الْبَدَلِ الْعِتْقُ عِنْدَ الْأَدَاءِ**،ځکه چي بدل کتابت واجبولو نه مقصد آزاديدل وو.د ادا کاوه په وخت. **فَإِذَا عَتَقَتْ قَبْلَهُ** او هرکله چي دا د هغي نه وړاندي آزاده شوه. **لَمْ يُمْكِنْ تَوْفِيرُ الْغَرَضِ عَلَيْهِ** غرض پوره کول ممکن نشو. **فَسَقَطَ وَبَطَلَتِ الْكِتَابَةُ لِامْتِنَاعِ إِبْقَائِهَا بِغَيْرِ فَائِدَةٍ**،نو مال ساقط شو.او کتابت باطل شو.ددي بي فائدي د پاته ساتلو ممتنع کيدلو په وجه.

**تشريح:** بيا که د بدل کتابت ادا کاوه نه وړاندي د آقا انتقال اوشي.نو ام ولد به مفت آزاديږي.ځکه چي ددي آزادي د آقا مرګ سره متعلق شوي وه.او ددي د ذمي څخه به بدل کتابت ساقطيږي.ځکه چي د بدل کتابت د ايجاب مقصد دا وو.چه ددي د ادا کاوه په وخت آزادي حاصله شي.او هرکله چي آزادي ددي نه وړاندي حاصله شوه.نو کوم مقصد چي ذکرشوي وو.د هغي توفير (پوره کول) ناممکن شو.نو مال د کتابت ساقط شو.او کتابت باطل شو.ځکه چي ددي بي فائدي پاته ساتل ممتنع دي.خو دومره خبره ضرور ده.چه مذکوره ام ولد ته به د هغي مزدوري او اولاد سپارلي شي.ځکه چي د عوض په حق کي کتابت فسخ شو.او د مزدورئ او اولاد په حق کي پاته دي.په دي وجه فسخ د کتابت د ام ولد د فائدي په لحاظ دي.او فائده هم په دي کي ده.چه د ام ولد په حق کي کتابت فسخ شي.اود مزدورئ او اولاد په حق کي پاته پاتي شي.

**غَيْرَ أَنَّهُ تُسَلَّمُ لَهَا الْأَكْسَابُ وَالْأَوْلَادُ** خو دومره خبره ده.چه دي ته به ددي مزدوري او ددي اولاد سپارلي شي. **لِأَنَّ الْكِتَابَةَ انْفَسَخَتْ فِي حَقِّ الْبَدَلِ** ځکه چي کتابت د بدل په حق کي فسخ شو. **وَبَقِيَتْ فِي حَقِّ الْأَكْسَابِ وَالْأَوْلَادِ**،اود اولاد او مزدورئ په حق کي پاته دي. **لِأَنَّ الْفَسْخَ لِنَظَرِهَا** ځکه چي فسخ د کتابت ددي د بهترئ (او فائدي) لپاره دي. **وَالنَّظَرُ فِيمَا ذَكَرْنَاهُ**.او بهتري هم په دي کي ده.کومه چي موږ بيان کړله. **وَلَوْ أَدَّتِ الْمُكَاتَبَةُ قَبْلَ مَوْتِ الْمَوْلَى** او که مکاتبه د آقا د مرګ نه وړاندي مال اداکړو. **عَتَقَتْ بِالْكِتَابَةِ** نو هغه به د کتابت په وجه آزاديږي. **لِأَنَّهَا بَاقِيَةٌ** ځکه چي اوس هغه پاته دي.

**تشريح:** صاحب د عنايه رحمه الله فرمائي.چه ،،تسلم لها الأولاد،، محل نظر دي.ځکه چي د ذکر شوي تعليل په لحاظ ددي د ذکر کاوه هيڅ اړتيا نشته.ځکه که کتابت د اولاد په حق کي فسخ اومنلي شي.بيا هم بهتري پاته پاتي



کيږي.ځکه چي د بچي حکم د مور حکم دي؟

**جواب:** دادي.چه دلته د اولاد نه مراد هغه اولاد دي.چه هغه د مور د کتابت نه وړاندي د آقا نه علاوه د بل چا د نطفي نه پيدا شوي وي.او هغه مور د کتابت په حالت کي اخستي وي.لکه څنګه چي تاج الشريعة ددي تصريح کړي ده.هغه اولاد مراد نه دي.کوم چي د آقا د نطفي نه پيدا شوي دي.

## د مدبره د مکاتب کولو حکم

**قَالَ: (وَإِنْ كَاتَبَ مُدَبَّرَتَهُ جَازَ)** که خپله مدبره ئي مکاتبه کړله.نو جائز دي. **لِمَا ذَكَرْنَا مِنَ الْحَاجَةِ** د هغه اړتيا په وجه کوم چي موږ بيان کړله. **وَلَا تَنَافِي**،او هيڅ منافات نشته. **إِذِ الْحُرِّيَّةُ غَيْرُ ثَابِتَةٍ**،ځکه چي آزادي ثابت نه ده. **وَإِنَّمَا الثَّابِتُ مُجَرَّدُ الِاسْتِحْقَاقِ** استحقاق ثابت دي. **(وَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى)** که آقا مړ شو. **وَلَا مَالَ لَهُ غَيْرُهَا** او حال دا چي دده هيڅ مال نشته، سوا د مدبرة نه. **فَهِيَ بِالْخِيَارِ بَيْنَ** نو هغي ته اختيار دي. **أَنْ تَسْعَى فِي ثُلُثَيْ قِيمَتِهَا** که غواړي.پخپلو ( دريو حصو کي دي په) دوي (دوه) برخو کي مزدوري اوکړي. **أَوْ جَمِيعِ مَالِ الْكِتَابَةِ** يا په پوره مال د کتابت کي ( دي مزدوري اوکړي ). **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ**.[1] دا دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دي.

**تشريح:** که آقا خپله مدبره وينځه مکاتبه کړله.نودا هم جائز دي.ځکه چي کوم اړتيا ذکرکړي شوي دي.هغه دلته کي هم ثابتيږي.او په کتابت او مدبر کيدلو کي هيڅ منافات نشته.ځکه چي مدبره کيدلو سره دي ته آزادي بالفعل حاصل نه ده.بلکه صرف د آزادئ استحقاق دي.اوس که آقا مړشي.او ددي مدبره نه علاوه دده هيڅ مال نه وي.نو دي مدبره مکاتبة ته به اختيار وي.که غواړي د خپل مدبرة کيدلو د قيمت په دوي (دوه) ثلثه ( دريو برخو کي دوي (دوه) حصي) کي دي مزدوري اوکړي.او که غواړي بدل کتابت کي دي مزدوري اوکړي.دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دي.

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ**:امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. **تَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنْهُمَا**. چي په دي دواړو کي دي په کم کي مزدوري اوکړي. **وَقَالَ مُحَمَّدٌ**:امام محمد رحمه الله فرمائي. **تَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنْ ثُلُثَيْ قِيمَتِهَا وَثُلُثَيْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ**، چي د خپل قيمت ( په دريوکي د) دوي (دوه) برخو او د بدل کتابت ( په دريو برخو کي د) دوي (دوه) برخو نه په کم کي دي مزدوري اوکړي. **فَالْخِلَافُ فِي الْخِيَارِ وَالْمِقْدَارِ**،نو اختلاف په اختيار او مقدار دواړو کي دي. **فَأَبُو يُوسُفَ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ فِي الْمِقْدَارِ**،نو امام ابويوسف رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله سره دي.په مقدار کي. **وَمَعَ مُحَمَّدٍ فِي نَفْيِ الْخِيَارِ**. او امام محمد رحمه الله سره دي د اختيار په نفي کي.

**تشريح:** د امام ابويوسف رحمه الله په نيز په دي دواړو کي چي کوم يو کم دي.هغي کي دي سعايت يعني مزدوري اوکړي.اودامام محمد رحمه الله په نيز د قيمت په دوي (دوه) ثلثه اود بدل کتابت په دوي (دوه) ثلثه کي چي کوم زيات کم وي.هغي کي دي سعايت يعني مزدوري اوکړي.اوس دلته کي په دوي (دوه) خبرو کي اختلاف دي.يو داچه ددي لپاره اختيار شته اوکه نه.دويمه داچه په کوم کي به دا سعايت يعني مزدوري کوي.د هغي مقدار څه دي؟ نو امام ابويوسف رحمه الله په مقدار کي امام ابوحنيفه رحمه الله سره دي.او په نفي د اختيار کي امام محمد رحمه الله سره دي.

**أَمَّا الْخِيَارُ فَفَرْعُ تَجَزُّؤِ الْإِعْتَاقِ عِنْدَهُ** بهرحال اختيار نو د اعتاق د متجزی کيدلو فرع ده.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چونکه اعتاق متجزی کيږي. **لَمَّا تَجَزَّأَ بَقِيَ الثُّلُثَانِ رَقِيقًا** نو دوي (دوه) برخي (حصي) رقبة مملوك پاتي شو. **وَقَدْ تَلَقَّاهَا جِهَتَا حُرِّيَّةٍ بِبَدَلَيْنِ** او دي ته د آزادئ دوي (دوه) جهته په دوي (دوه) عوضونو سره حاصل دي. **مُعَجَّلٍ**

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (١١\٥) والعناية (١٢٤\٨) والكفاية (١٢٤\٨) ورد المحتار(٧٤\٥) وكنز(٣٢٧) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٢\٢)_

بِالتَّدْبِيْرِ او معجل په ذریعه د تدبیر (مدبره کیدلو) وَمُؤَجَّلٌ بِالْكِتَابَةِ بل موجل په ذریعه د کتابت، فَتُخَيَّرُ او نو دې ته په دواړو کې اختیار دې.

**تشریح:** په اختیار کیدلو یا نه کیدلو کې چې کوم اختلاف دې. دا په اصل کې د اعتاق په متجزی کیدلو او نه کیدلو باندې متفرع دې.

د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اعتاق متجزی دې. یعنی عتق برخې (حصې) کیدای شي. او مدبره مذکوره د یو ثلث د آزادۍ مستحقه شوه. (ځکه دا خبره معلومه ده. چه مدبره د اکثرو عالمانو په نیز د ثلث مال نه آزادیږي سوا د ابراهیم نخعي او داؤد ظاهري نه) نو ددې دوې (دوه) ثلثه رقبه مملوکه پاتې شوه. دلته ددې د آزادۍ دوې (دوه) جهته دي. یو په ذریعه د مدبره کیدلو حریت معجله (فی الحال فوری آزادي)، او بل په ذریعه د کتابت حریت موجله (موده او نیټه داره آزادي چې په بدل کتابت ادا کاوه سره به حاصلیږي) نو دې ته به د قیمت د دوې (دوه) ثلثه او بدل کتابت په دوې (دوه) ثلثه کې اختیار وي. په کوم کې چې غواړي سعایت (مزدوري او د آزادۍ کوشش) دې اوکړي.

## د صاحبینو رحمهما الله مسلک

وَعِنْدَهُمَا لَمَّا عَتَقَ كُلُّهَا بِعِتْقِ بَعْضِهَا او د صاحبینو رحمهما الله په نیز چې کله دا کل (پوره) آزاده شوه. د بعض برخې (حصې) په آزادیدلو سره، فَهِيَ حُرَّةٌ نو دا آزاده ښځه ده. وَجَبَ عَلَيْهَا أَحَدُ الْمَالَيْنِ او په دې باندې دوې (دوه) مالونو کې یو واجب دې. فَتَخْتَارُ الْأَقَلَّ لَا مَحَالَةَ نو خامخا به دا کم تر اختیاره وي. فَلَا مَعْنَى لِلتَّخْيِيرِ. په دې وجه د اختیار هیڅ معنی پاتې نشوه.

**تشریح:** او د صاحبینو رحمهما الله په نیز اعتاق کې تجزی نه کیږي. نو د بعض برخې (حصې) په آزدیدلو سره به کل آزادیږي. نو اوس هغه یوه آزاده ښځه ده. چه په دې باندې په بدل کتابت او قیمت کې یو واجب دې. او دا ښکاره ده. چه هغه به هغې له ترجیح ورکوي. کوم چې په دواړو کې کم وي. نو اختیار بې مطلبه دې.

وَأَمَّا الْمِقْدَارُ پاتې شو مقدار فَلِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ قَابَلَ الْبَدَلَ بِالْكُلِّ نو د امام محمد رحمه الله دلیل دادې. چه دې عوض د کل په مقابله کې کړې دې. وَقَدْ سَلَّمَ لَهَا الثُّلُثَ بِالتَّدْبِيْرِ او حال دا چې مدبره ته دریمه برخه د مدبره کیدلو په وجه ملاؤ شوه. فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ يَجِبَ الْبَدَلُ بِمُقَابَلَتِهِ نو ددې په مقابله کې عوض واجبیدل محال (ناممکن) دی. أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ سَلَّمَ لَهَا الْكُلَّ آیا نه ګورې. که دې ته کل (عوض او آزادي) ملاؤ شوې وه. بِأَنْ خَرَجَتْ مِنَ الثُّلُثِ په دې طریقه چې دا (د ترکې) د دریمې برخې (حصې) نه راوتلې وه. يَسْقُطُ كُلُّ بَدَلِ الْكِتَابَةِ نو پوره بدل کتابت به ساقطیدلو. فَهَاهُنَا يَسْقُطُ الثُّلُثُ نو دلته به دریمه ساقطیږي. وَصَارَ كَمَا إِذَا تَأَخَّرَ التَّدْبِيْرُ عَنِ الْكِتَابَةِ. نو داسې شوه. لکه چې مدبره کول د کتابت نه روسته وي.

**تشریح:** پاتې شو اختلاف د مقدار، نو امام محمد رحمه الله فرمائي چه آقا بدل کتابت د پوره ذات په مقابله کې ایخودې دې. ځکه چې ده عقد کتابت ددې د پوره ذات اړخ ته نسبت کاوه سره داسې ونیلی وو. «کاتبتك على هذا» بیا د خالص غلام پشان مذکوره مدبره هم ددې عقد قابل محل دې. نو دا به کل مکاتبه وي. او د مدبره کیدلو په وجه هغې ته دریمه برخه ملاؤ شوه. مطلب دا چې ددې دریمه برخه آزاده شوه. نو خامخا به ددې په مقابله کې د بدل کتابت یو ثلث (دریمه حصه) ساقطیږي. آیا نه ګورې. که دې ته پوره رقبه ملاؤ شوې وه. په دې طریقه چې دا د ترکې (میراث) د دریمې برخې (حصې) نه پوره شوې وه. نو پوره بدل کتابت به ساقطیدلو. نو دلته به هم دریمه برخه بدل کتابت ساقطیږي. او دا به د خپل قیمت د دوې (دوه) ثلثه نه په کم کې سعایت (مزدوري) کوي. او دا داسې شوه. لکه چې آقا وړاندې خپل غلام مکاتب کړي. بیا ئې مدبر کړي. ددې نه روسته د آقا انتقال اوشي. او ددې مدبرې نه علاوه ئې هیڅ مال نه وي. چه په دې صورت کې بالاتفاق دریمه برخه بدل ساقطیږي. لکه چې د زیربحث مسئله نه روسته راروانه ده.



وَلَهُمَا او د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. أَنَّ جَمِيعَ الْبَدَلِ مُقَابَلٌ بِثُلُثَيْ رَقَبَتِهَا چې کل عوض ددې د دوې (دوه) ثلثه رقبې په مقابله کې دې. فَلَا يَسْقُطُ مِنْهُ شَيْءٌ نو ددې ځنځه به هیڅ نه ساقطیږي. وَهٰذَا لِأَنَّ الْبَدَلَ وَإِنْ قُوبِلَ بِالْكُلِّ صُورَةً وَصِيغَةً لٰكِنَّهُ مُقَيَّدٌ بِمَا ذَكَرْنَا مَعْنًى وَإِرَادَةً او دا ځکه دې. چه بدل اګرچه ضرورتاً او لفظاً د کل په مقابله کې ګرځولې شوې دې. خود معنی او ارادې په لاره هغې سره مقید دې. کوم چې مونږ ذکرکړل. لِأَنَّهَا اسْتَحَقَّتْ حُرِّيَّةَ الثُّلُثِ ظَاهِرًا ځکه چې په ښکاره هغه د دریمې برخې (حصې) د آزادۍ مستحق شوه.

**تشریح:** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. چه پوره بدل کتابت ددې د دوې (دوه) ثلثه رقبې په مقابله کې دې. نو ددې ځنځه به هیڅ نه ساقطیږي. ددې وضاحت دادې. چه بدل کتابت په ښکاره د مدبره د پوره ذات په مقابله کې دې. «حیث قال: کاتبتك» او د صیغه په اعتبار سره هم د پوره ذات په مقابله کې دې. ځکه چې خطاب سره د پوره ذات تعبیر کولې شي. خو د معنی او اراده په طور د دوې (دوه) ثلثه په مقابله کې دې. ځکه دا خبره ښکاره ده. چه د مدبره کیدلو په وجه د دریمې برخې (حصې) د آزادۍ مستحقه شوه. او دا هم ښکاره ده. چه د څومره برخې (حصې) په اندازه د آزادۍ استحقاق حاصل شي. د هغې په مقابله کې سړي باندې مال نه لازمیږي. او دا داسې شوه. لکه چې یو سړي خپلې ښځې ته دوې (دوه) طلاقونه ورکړي. بیا هغې ته په زر (درهم) باندې درې طلاقونه ورکړي. چه د ارادې د دلالت په طور پوره زر دراهم د یو طلاق په مقابله کې وي. په خلاف د کتابت د وړاندې کیدلو په مسئله کې، چې په دې کې به پوره عوض د کل رقبې په مقابله کې وي. ځکه چې د وړاندې نه هیڅ استحقاق ثابت نه دې.

وَالظَّاهِرُ أَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يَلْتَزِمُ الْمَالَ بِمُقَابَلَةِ مَا يَسْتَحِقُّ حُرِّيَّتَهُ او ښکاره هم داده. چه سړې د هغې په مقابله کې د مال التزام نه کوي. د کوم د آزادۍ چې مستحق شوې دې. وَصَارَ كَمَا إِذَا طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثِنْتَيْنِ او دا داسې شوه. لکه چې یو کس خپلې وینځې ته دوې (دوه) طلاقونه ورکړل. ثُمَّ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا عَلَى أَلْفٍ بیا ئې هغې ته په یو زر (درهمو) درې طلاقونه ورکړل. كَانَ جَمِيعُ الْأَلْفِ بِمُقَابَلَةِ الْوَاحِدَةِ الْبَاقِيَةِ لِدَلَالَةِ الْإِرَادَةِ نو پوره یو زر (درهم) د پاته یو طلاق په مقابله کې راځي. د ارادې د دلالت په وجه. كَذَا هٰهُنَا هم دغه ډول به دلته کې کیږي. بِخِلَافِ مَا إِذَا تَقَدَّمَتِ الْكِتَابَةُ په خلاف ددې کله چې کتابت وړاندې وي. وَهِيَ الْمَسْأَلَةُ الَّتِي تَلِيهَا او هم دا هغه مسئله ده. کومه چې ددې نه روسته راروانه ده. لِأَنَّ الْبَدَلَ مُقَابَلٌ بِالْكُلِّ ځکه چې عوض د کل په مقابله کې دې. إِذْ لَا اسْتِحْقَاقَ عِنْدَهُ فِي شَيْءٍ ځکه چې د وړاندې نه هیڅ استحقاق نشته. فَافْتَرَقَا نو په دواړو کې توپیر اوشو.

**تشریح:** په دې باندې څوك دا ونیلې شي. چه د آزادۍ په استحقاق سره حقیقي آزادي نه لازمیږي. او مذکوره مدبرۀ ته في الحال صرف استحقاق حاصل دې. حقیقي آزادي حاصل نه ده. نو ممکن ده. چه دا في الحال د حقیقي آزادۍ نه د فائدې اخستلو محتاجه وي. او د هغې په مقابله کې دا د مال التزام اوکړي. ځکه چې آقا بالاجماع خپله ام ولد مکاتبه کولې شي. حالانکه هغه د کل مستحقه وي. ځکه چې هغه د آقا د مرګ په وخت د کل مال نه آزادیږي. د ثلث مال نه نه آزادیږي.

## د مکاتبه مدبره جوړولو حکم

قَالَ (وَإِنْ دَبَّرَ مُكَاتَبَتَهُ صَحَّ التَّدْبِيْرُ) او که آقا خپله مکاتبه مدبره کړله. نو صحیح ده. لِمَا بَيَّنَّا. (وَلَهَا الْخِيَارُ، إِنْ شَاءَتْ مَضَتْ عَلَى الْكِتَابَةِ) او دې ته اختیار دې. که په کتابت باندې چلیږي. (وَإِنْ شَاءَتْ عَجَّزَتْ نَفْسَهَا) او که غواړي خپل ځان دې عاجزه کړي. (وَصَارَتْ مُدَبَّرَةً) او مدبره دې شي. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ لَيْسَتْ بِلَازِمَةٍ فِي جَانِبِ الْمَمْلُوكِ، ځکه چې کتابت لازمي نه دې. د مملوك په اړخ کې.

**تشریح:** که آقا خپله مکاتبه وینځه مدبره کړله. نو کوم دلیل چې ذکرکړې شوې دې. «أنه تلقتها جهتا حرية» مدبر کول صحیح دی. اوس دې مکاتبۀ مدبرۀ ته اختیار دې. که غواړي عقد کتابت دې پوره کړي. او که

غواړي خپل ځان دې عاجزه کړي. مدبره دې شي. ځکه چې د احنافو او د ثلاثه امامانو رحمهم الله په نيز عقد کتابت د مملوك په اړخ کې نه لازمیږي. بیا په ذخیره کې دي. چه ددې مسئلې په اړه کې د مشائخو اختلاف دی چه کله مکاتبه خپل ځان عاجزه اوګرځوي. اوکه آقا ددې د عاجزه کیدلو نه انکار اوکړي. نو دې ته ددې اختيار دې. خو شيخ ابوبکر بلخي رحمه الله فرمائي. چه دا خبره دهغې بالکل خلاف ده. کومه چې زمونږه اصحابو پخپلو کتابونو کې ذکرکړې ده. چه په دې کې غلام پخپله اختيار مند دې.

فَإِنْ مَضَتْ عَلَى كِتَابَتِهَا نو كه هغه په کتابت باندې روانه شوه. فَمَاتَ الْمَوْلَى او آقا مړشو. وَلَا مَالَ لَهُ غَيْرُهَا او ددې نه علاوه د هغه هيڅ مال نشته. فَهِيَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَتْ سَعَتْ فِي ثُلُثَيْ مَالِ الْكِتَابَةِ نو دې ته اختيار دې که غواړي په دوې (دوه) ثلثه مال کتابت کې دې سعايت (مزدوري) اوکړي. أَوْ ثُلُثَيْ قِيمَتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ. اوکه غواړي د خپل قيمت په دوې (دوه) ثلثه کې دې مزدوري اوکړي. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي. تَسْعَى فِي الْأَقَلِّ مِنْهُمَا، چې ددې دواړو نه کم وي. هغې کې دې سعايت اوکړي. فَالْخِلَافُ فِي هَذَا الْفَصْلِ فِي الْخِيَارِ بِنَاءً عَلَى مَا ذَكَرْنَا. نو په دې فصل کې اختلاف صرف په اختيار کې دې. په هغه بناء کومه چې مونږ ذکرکړله. أَمَّا الْمِقْدَارُ پاتې شو مقدار فَمُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَوَجْهُهُ مَا بَيَّنَّا نو په دې اتفاق دې. او وجه هم هغه ده. کومه چې مونږ بيان کړې ده.

**تشريح:** که ذکر شوې مکاتبه مدبره عقد کتابت پوره کول اختيار کړل. او ددې د پوره کاوه نه وړاندې آقا مړشو. او ددې وينځې نه علاوه هيڅ مال نشته. نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا اختيار منده وي. که غواړي په دوې (دوه) ثلثه مال کتابت کې دې مزدوري اوکړي. او که غواړي. د خپل قيمت په دوې (دوه) ثلثه کې دې مزدوري اوکړي. د صاحبينو رحمهما الله په نيز اختيار نشته. بلکه په دې دواړو کې به په کم مقدار کې سعايت کوي. نو دلته کې صرف په اختيار کيدلو کې اختلاف دې. چه دا د اعتاق په متجزی کيدلو او نه کيدلو باندې مبنی دې. پاتې شو مقدار، نودا د ټولو په نيز دوې (دوه) ثلثه متعين دې. ځکه چې عوض په مقابله د کل رقبة کې دې. نو استحقاق ثابت نشو. ځکه چې مدبره خو ددې نه روسته شوې ده.

قَالَ (وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى مُكَاتَبَهُ) كله چې آقا خپله مکاتبه آزاده کړله. (عَتَقَ بِإِعْتَاقِهِ) لِقِيَامِ مِلْكِهِ فِيهِ نو هغه به دده په آزادولو سره آزاديږي. خو په دې کې د آقا ملك قائم دې. (وَسَقَطَ بَدَلُ الْكِتَابَةِ) او بدل کتابت به ساقطيږي. لِأَنَّهُ مَا الْتَزَمَهُ إِلَّا مُقَابَلًا بِالْعِتْقِ وَقَدْ حَصَلَ لَهُ دُونَهُ ځکه چې ده د مال التزام نه وو کړې. خود آزادئ په مقابله کې هغه ددې نه بغير حاصل شو. فَلَا يَلْزَمُهُ، نو مال به لازم نه وي. وَالْكِتَابَةُ وَإِنْ كَانَتْ لَازِمَةً فِي جَانِبِ الْمَوْلَى او کتابت اګرچه د آقا په اړخ کې لازميږي. وَلَكِنَّهُ يُفْسَخُ بِرِضَا الْعَبْدِ خود غلام په رضامندئ سره فسخ کيږي. وَالظَّاهِرُ رِضَاهُ تَوَسُّلًا إِلَى عِتْقِهِ بِغَيْرِ بَدَلٍ مَعَ سَلَامَةِ الْأَكْسَابِ لَهُ او ښکاره دده رضامندي ده. بغير د مال نه د خپلې آزادئ وسيله کاوه دپاره. د خپلې مزدورئ سلامت او محفوظ ساتلو سره. لِأَنَّا نُبْقِي الْكِتَابَةَ فِي حَقِّهِ ځکه چې دمزدورئ په حق کې مونږ دده کتابت پاتـه ساتلې دې.

**تشريح:** که آقا خپله مکاتبه آزاده کړله. نو هغه به دده په آزادولو سره آزاديږي. ځکه چې په دې کې د آقا ملك قائم دې. ځکه چې وړاندې داخبره معلومه شوه. چه په مکاتب باندې ترکومه پورې يو درهم هم پاتـه پاتې وي. هغه غلام وي. او هرکله چې هغه آزاده شوه. نو بدل کتابت به ساقطيږي. ځکه چې د مال التزام خو دې خکه کړې وو. چه ددې په مقابله کې آزادي حاصله شي. او دلته هغه د مال نه بغير آزاده شوه. او عقد کتابت اګرچه د آقا په اړخ کې لازم دې. يعنی هغه دا نشي ماتولې. خود غلام په رضامندئ سره فسخ کيداې شي. او دا ښکاره ده. چه هرکله غلام ته دده مزدوري ملاويږي. مطلب دا چې د مزدورئ په حق کې مونږ دده کتابت پاتـه ساتلې دې. او ده ته آزادي هم مفت ملاويږي. نو دا به ضرور په دې خبره راضي کيږي. چه عقد کتابت ماتـ شي.



## د موده په بدل کښې د فوري په کم عوض د صلح کولو حکم

قَالَ (وَإِنْ كَاتَبَهُ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ إِلَى سَنَةٍ) که مملوك ئې د يوکال په وعده باندې په زر درهمو باندې مکاتب کړو. (فَصَالَحَهُ عَلَى خَمْسِمِائَةٍ مُعَجَّلَةٍ) بيا په فوري پنځه سوه باندې صلح اوکړله. (فَهُوَ جَائِزٌ) اسْتِحْسَانًا. نو دا جائز دی. استحسانا، وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او په قياس کې جائز نه دی. لِأَنَّهُ اعْتِيَاضٌ عَنِ الْأَجَلِ ځکه چې دا د ميعاد (موده) عوض اخستل دی. وَهُوَ لَيْسَ بِمَالٍ او ميعاد مال نه دې. وَالدَّيْنُ مَالٌ او دين مذکور مال دې. فَكَانَ رِبًا نو دا مباح شو. وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ مِثْلُهُ فِي الْحُرِّ وَمُكَاتَبِ الْغَيْرِ. په دې وجه آزاد او د غير د مکاتب په صورت کې داسې نه جائز کيږي.

**تشريح:** که آقا خپل مملوك د يو کال په موده کې په زر درهم باندې مکاتب کړو. بيا ئې ددې په عوض کې په پنځه سوه نقدو باندې صلح اوکړله. نو دا استحساناً جائز دی. د قياس په رو سره جائز نه ده. امام شافعي او امام مالك رحمهما الله ددې قائل دی. او په حليه کې دی. چه د امام ابويوسف او امام زفر رحمهما الله قول هم دادې. ځکه چې په دې صورت کې د ميعاد عوض اخستل لازميږي. حالانکه ميعاد مال نه دې. نو دا سود شو. ددې وضاحت دادې. چه هرکله مملوك پنځه سوه درهم اداکړل. نو دا پنځه سوه درهم په هغه زر درهمو کې د پنځه سوه په مقابله کې شو. کوم چې دده په ذمه دين دی. او پاته پنځه سوه مکاتب لپاره د مودې په عوض کې سلامت پاتې شوې. حالانکه موده مال نه دې. او کوم دين چې دده په ذمه دې. هغه مال دې. نودا مقابله د مال بلا مال شوه. او هم دا سود دې. «لأن الربوا هو الفضل الخالي على عن العوض» هم دا وجه ده. چه د آزادئ په صورت کې او د غير د مکاتب په صورت کې داسې معامله نه جائز کيږي. مثلا په يو آزاد سړي يا د زيد په مکاتب باندې زر درهمه پور وي. چه دهغې موده يو کال دې. نو هغه په نقد پنځه سوه درهمو باندې صلح اوکړي. نودا جائز نه ده.

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّ الْأَجَلَ فِي حَقِّ الْمُكَاتَبِ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ چې دمکاتب په حق کې ميعاد هم يو ډول مال دې. لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْأَدَاءِ إِلَّا بِهِ ځکه چې دې د ميعاد نه بغير ادا کاوه باندې قادر نه دې. فَأُعْطِيَ لَهُ حُكْمُ الْمَالِ، نو ميعاد ته د مال حکم ورکړې شو. وَبَدَلُ الْكِتَابَةِ مَالٌ مِنْ وَجْهٍ او بدل کتابت هم يو ډول له مال دې. حَتَّى لَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِهِ ترددې چې دده کفالت صحيح نه دې. فَاعْتَدَلَا فَلَا يَكُونُ رِبًا، نو دواړه برابر شو. نو سود به نه وي.

**تشريح:** وجه د استحسان داده. چه موده اګرچه في نفسه مال نه دې. خود غلام په حق کې دا د مال په حکم کې دې. ځکه چې هغه د مودې نه بغير په بدل کتابت ادا کاوه باندې قادر نه دې. او بدل کتابت هم صرف من وجه مال دې. من کل الوجوه مال نه دې. ګني دده کفالت به صحيح وو. حالانکه د بدل کتابت کفالت صحيح نه دې. نو په دې لحاظ سره دواړه برابر شو. او سود لازم نشو.

وَلِأَنَّ عَقْدَ الْكِتَابَةِ عَقْدٌ مِنْ وَجْهٍ دُونَ وَجْهٍ او ځکه چې عقد کتابت په يوه وجه عقد دې. په دويمه وجه نه دې. وَالْأَجَلُ رِبًا مِنْ وَجْهٍ او ميعاد هم په يوه وجه سود دې. فَيَكُونُ شُبْهَةَ الشُّبْهَةِ، نو دلته کې شبهة الشبه شوه. بِخِلَافِ الْعَقْدِ بَيْنَ الْحُرَّيْنِ لِأَنَّهُ عَقْدٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ په خلاف د هغه عقد کوم چې په دوې (دوه) آزادو سړو کې وي. چه هغه په هرشان عقد دې. فَكَانَ رِبًا وَالْأَجَلُ فِيهِ شُبْهَةٌ نو سود شو. او ميعاد د سود شبه ده.

**تشريح:** د استحسانی حکم دوهم دليل دادې. چه عقد کتابت د بيع په لحاظ سره عقد معاوضه ده. اود غلام په لحاظ سره معاوضه نه ده. او حقيقی سود د دوې (دوه) مالونو په منځ کې وي. حالانکه ميعاد په يوه وجه مال نه دې. نو دلته کې د سود شبه پيدا نشوه. بلکه شبهة الشبه شوه. چه دا معتبر نه ده. په خلاف ددې کله چې دا معامله د دوې (دوه) آزادو سړو په منځ کې وي. چه دا په هرشان عقد مالی دې. او ميعاد کې د سود شبه ده. نودا معتبر شو. او سود شو. ځکه چې د سود شبه په مرتبه د سود وي.

**وارثانو لپاره د عقد کتابت ختمولو حکم**

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَ الْمَرِيضُ عَبْدَهُ) که مریض خپل غلام مکاتب کړو. عَلَى أَلْفَيْ دِرْهَمٍ إِلَى سَنَةٍ په دوي (دوه) زره درهم باندې. د یو کال نیټې پورې. وَقِيمَتُهُ أَلْفٌ او د غلام قیمت زر درهم دي. ثُمَّ مَاتَ بیا مریض مړ شو. وَلَا مَالَ لَهُ غَيْرُهُ او ددې غلام نه علاوه هیڅ مال نشته. وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثانو د مودې اجازت ورنکړو. فَإِنَّهُ يُؤَدِّي ثُلُثَيِ الْأَلْفَيْنِ حَالًا وَالْبَاقِيَ إِلَى أَجَلِهِ نو مکاتب به د دوي (دوه) زره درهم دوې (دوه) ثلثه فی الحال او پاته به میعاده پورې اداکوي. أَوْ يُرَدُّ رَقِيقًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ. یا به دې دوباره غلام کولې شی. د شیخینو رحمهما الله په نیز.

**تشریح:** یو بیمار خپل غلام چې دهغه قیمت یو زر (درهم) دې. د دوې (دوه) زره په عوض یو کال مودې پورې مکاتب کړو. بیا هغه مړشو. او ددې غلام نه علاوه نور هیڅ مال هم نه دې پرېښودې. دلته دده وارثان موده ورکول نه منظوره وی. بدل کتابت فی الحال اخستل غواړي. نود شیخینو رحمهما الله په نیز به مذکوره غلام د بدل کتابت (د دوې (دوه) زره درهمو) دوې (دوه) ثلثه فی الحال اداکوي. او پاته یو ثلث (دریمه حصه) به د خپلې مقرر مودې پورې اداکوي. که داسې نشی کولې. نو عقد کتابت دې ختم کړي. او غلام دې شی.

قَالَ مُحَمَّدٌ: يُؤَدِّي ثُلُثَيِ الْأَلْفِ حَالًا وَالْبَاقِيَ إِلَى أَجَلِهِ) د امام محمد رحمه الله په نیز د یو زر درهمو دوې (دوه) ثلثه فی الحال او پاته به میعاده پورې اداکولې شی. لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَتْرُكَ الزِّيَادَةَ ځکه مریض ته دا اختیار وو. چه زیادت پرېږدی. بِأَنْ يُكَاتِبَهُ عَلَى قِيمَتِهِ په دې طریقه چې صرف ددې په قیمت ئې مکاتب کړي. فَلَهُ أَنْ يُؤَخِّرَهَا نو هغه زیاتوالې مؤخر کولې هم شی. وَصَارَ كَمَا إِذَا خَالَعَ الْمَرِيضُ امْرَأَتَهُ عَلَى أَلْفٍ إِلَى سَنَةٍ او دا داسې شوه. لکه چې مریض خپلې ښځې ته په یو زر (درهمو) باندې د یوکال مودې پورې خلع اوکړي. جَازَ نو دا جائز دی. لِأَنَّ لَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا بِغَيْرِ بَدَلٍ، ځکه چې ده ته د عوض نه بغیر د طلاق ورکاوه اختیار دې.

**تشریح:** د امام محمد رحمه الله په نیز د قیمت (د یو زر درهمو) دوې (دوه) ثلثه دې فی الحال اداکړي. او پاته دې د مقرره مودې پورې اداکوي. هغه دا فرمائی. چه هرکله آقا ته ددې خبرې حق دی. چه هغه دا مقدار پرېږدی. کوم چې دده دقیمت نه زیات دې. یعنی یو زر درهم. نو هغه ددې مقدار د مؤخر کاوه هم حقدار دې. نو په غلام باندې فی الحال د خپل قیمت دوې (دوه) ثلثه اداکول لازمی وی. دا داسې شوه. لکه چې یو مریض خپلې ښځې ته په زر درهم باندې دیو کال په وعدې باندې خلع اوکړله. نو دا جائز دی. ځکه مریض ته دا اختیار دی. چه هغه خپله ښځه د عوض نه بغیر طلاقه کړي.

وَلَهُمَا شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. أَنَّ جَمِيعَ الْمُسَمَّى بَدَلُ الرَّقَبَةِ حَتَّى أُجْرِيَ عَلَيْهَا أَحْكَامُ الْأَبْدَالِ چې جمیع مسمی د رقبه بدل دې. تردې چې په پوره مسمی باندې د عوضونو احکام جاری کړې شوی دی. وَحَقُّ الْوَرَثَةِ مُتَعَلِّقٌ بِالْمُبْدَلِ او د وارثانو حق مبدل سره متعلق دې. فَكَذَا بِالْبَدَلِ. نو هم دغه ډول به ددې بدل سره هم متعلق کیږي. وَالتَّأْجِيلُ إِسْقَاطٌ مَعْنًى او موده ورکول معناً د حق اسقاط دې. فَيُعْتَبَرُ مِنْ ثُلُثِ الْجَمِيعِ. نو ددې اعتبار به د کل په دریمه سره کیږي. بِخِلَافِ الْخُلْعِ لِأَنَّ الْبَدَلَ فِيهِ لَا يُقَابِلُ الْمَالَ په خلاف د خلع، چې په دې کې عوض د مال په مقابله کې نه دې. فَلَمْ يَتَعَلَّقْ حَقُّ الْوَرَثَةِ بِالْمُبْدَلِ نود وارثانو حق مبدل سره متعلق نشو. فَلَا يَتَعَلَّقُ بِالْبَدَلِ، نو بدل سره به هم نه متعلق کیږي.

**تشریح:** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې. چه دلته کې بدل د رقبه پوره دوې (دوه) زره درهم دی. تردې چې په پوره دوې (دوه) زره باندې د عوض احکام جاری کیږي. اود وارثانو حق د مبدل سره متعلق دې. نو بدل سره به متعلق وی. او تاجیل (یعنی وخت اومهلت ورکول) معناً د حق اسقاط یعنی ګویا په حق کې ئې څه ساقط کړل. نو ددې اعتبار به د هغه ټولو د دریمې نه کیږي. کوم ئې چې مقرر کړې دې. یعنی د مریض اختیار د ترکې صرف په دریمه برخه کې وی. نو موده مقررول، او کمول به د پوره مسمی د دریمې نه معتبر وی. په



خلاف د خلع، چې په خلع کې کوم عوض مقرر دې هغه د مال په مقابله کې نه دې. نود وارثانو حق مبدل سره متعلق نشو. ځکه چې هغه خو دده ښځه ده. نو هم دغه ډول به ددې بدل سره هم نه متعلق کیږي.

وَنَظِيرُ هَذَا إِذَا بَاعَ الْمَرِيضُ دَارَهُ بِثَلَاثَةِ آلَافٍ إِلَى سَنَةٍ او ددې مثال دادې چه مریض خپل کور د درې زرو (درهمو) په عوض د یو کال په موده خرڅ کړو. وَقِيمَتُهَا أَلْفٌ او د کور قیمت یو زر (درهم) دې. ثُمَّ مَاتَ بیا هغه مړشو. وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثانو د میعاد اجازت ورنکړو. فَعِنْدَهُمَا يُقَالُ لِلْمُشْتَرِي نو د شیخینو رحمهما الله په نیز به مشتری ته ونیلې شی. أَدِّ ثُلُثَيْ جَمِيعِ الثَّمَنِ حَالًا وَالثُّلُثَ إِلَى أَجَلِهِ وَإِلَّا فَانْقُضِ الْبَيْعَ، چې د پوره ثمن دوې (دوه) ثلثه فی الحال او دریمه برخه په میعاد باندې ادا کړه. ګنی بیع ماته کړله. وَعِنْدَهُ يُعْتَبَرُ الثُّلُثُ بِقَدْرِ الْقِيمَةِ او د امام محمد رحمه الله په نیز به د قیمت د مقدار دریمه معتبر وی. لَا فِيمَا زَادَ عَلَيْهِ لِمَا بَيَّنَّا مِنَ الْمَعْنَى، ددې نه زیاتنه به معتبر نه وی. په هغه وجه کومه چې مونږ بیان کړله.

**تشریح:** د ذکرشوې اصل مسئلې مثال دې. چه یو مریض خپل د یو زر درهمو د قیمت کور د درې زره درهمو په عوض د یو کال په موده باندې خرڅ کړي. او مړشي. او وارثانو موده منظور نکړله. نود شیخینو رحمهما الله په نیز به مشتری ته ونیلې شي. چه د پوره ثمن دوې (دوه) ثلثه فی الحال او دریمه برخه (یو ثلث) پخپله موده باندې اداکړه. ګنی بیع به ماتولې شی. اود امام محمد رحمه الله په نیز به د قیمت د مقدار صرف دریمه معتبر وی. ددې نه زیات به معتبر نه وی. نود یو زر دوې (دوه) ثلثه به فی الحال اداکوي. او پاته به په نیټه باندې اداکوي. ځکه چې په میعاد نه کیدلو کې د وارثانو حق صرف دې حده پورې دې. ځکه چې د مریض په پوره قیمت باندې خرڅول جائز وی. نو په زیاتوالی باندې خرڅول پخپله د مریض د حق وو. نو هم دغه ډول په زیاتوالی کې موده ورکول به هم د هغه حق وی.

قَالَ (وَإِنْ كَاتَبَهُ عَلَى أَلْفٍ إِلَى سَنَةٍ) و که مکاتب ئې کړو. دې په زر (درهمو) باندې د یو کال په موده، وَقِيمَتُهُ أَلْفَانِ او دده قیمت دوې (دوه) زره دې. وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثانو اجازت ورنکړو. يُقَالُ لَهُ نو مکاتب ته به ونیلې شی. أَدِّ ثُلُثَيِ الْقِيمَةِ حَالًا أَوْ تُرَدُّ رَقِيقًا فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا) چې خپل دوې (دوه) ثلثه قیمت فی الحال اداکړه. ګنی ته به غلام کولې شی. د ټولو په قول کې. لِأَنَّ الْمُحَابَاةَ هَاهُنَا فِي الْقَدْرِ وَالتَّأْخِيرِ ځکه چې دلته کې محاباة (په کم قیمت ورکول) په مقدار او میعاد دواړو کې دې. فَاعْتُبِرَ الثُّلُثُ فِيهِمَا نو دواړو کې به د دریمې اعتبار کولې شی.

**تشریح:** اوکه د غلام قیمت دوې (دوه) زره درهم وی. او مریض د یو زر عوض باندې مکاتب کړي. پاته مسئله هم دغه ډول وی. نو په دې صورت کې په اتفاق د آئمه ثلاثه رحمهم الله د خپل قیمت دوې (دوه) ثلثه به فی الحال اداکوي. یا دې غلامی اختیار کړي. ځکه چې دلته مریض په مقدار او میعاد دواړو کې محاباة یعنی کمی کړې ده. نو د دریمې برخې (حصې) اعتبار به دواړو کې کولې شی.

## (بَابُ مَنْ يُكَاتِبُ عَنِ الْعَبْدِ)

ژباړه: (دا) باب د هغه کس (د احکامو په بیان کې) دې. چه د غلام د اړخه کتابت اوکړي.

**تشریح:** په باب د کتابت کې چې کوم احکام اصیل سره متعلق دی. د هغې د ذکر نه د فراغت نه په دې باب کې هغه احکام ذکر کوی. کوم چې نائب سره متعلق دی. او د اصیل احکام ئې ځکه مقدم کړی دی. چه د سړی په تصرفاتو کې اصل هم دادې. چه هغه پخپله خپل ځان لپاره وی.

**د آزاد سړي د غائب غلام د اړخه د کتابت کولو یا آزادولو مسئله**

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَ الْحُرُّ عَنْ عَبْدٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ، که یو آزاد سړی د غلام اړخه په زر درهمه باندې کتابت مقرر کړو. فَإِنْ أَدَّى عَنْهُ عَتَقَ، نو که د هغه د اړخه ئې ادا کړو. نو هغه آزاد شو. وَإِنْ بَلَغَ الْعَبْدَ و که غلام ته خبر

وراورسيدلو. (فَقَبِلَ) و هغه قبول کړو. (فَهُوَ مُكَاتَبٌ) نو هغه مکاتب دي. وَصُورَةُ الْمَسْأَلَةِ أَنْ يَقُولَ الْحُرُّ لِمَوْلَى الْعَبْدِ صورت د مسئلې دادې، چه آزاد سړې د غلام آقا ته اووائي. كَاتِبْ عَبْدَكَ عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ أَلْفًا چې خپل غلام د يو زر( درهمو) په عوض مکاتب کړه، په دې شرط که زه تاته زر( درهم) درکړم. فَهُوَ حُرٌّ نو هغه آزاد دې. فَكَاتَبَهُ الْمَوْلَى عَلَى هَذَا آقا په دې اقرار باندې مکاتب کړو. يُعْتَقُ بِأَدَائِهِ بِحُكْمِ الشَّرْطِ، نو هغه به دې په ادا کاوه سره په حکم د شرط آزاد وي. وَإِذَا قَبِلَ الْعَبْدُ او که غلام قبول کړو. صَارَ مُكَاتَبًا، نو هغه به مکاتب وي. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ كَانَتْ مَوْقُوفَةً عَلَى إِجَازَتِهِ خکه چې کتابت د هغه په اجازت موقوف وو. وَقَبُولُهُ إِجَازَةٌ، او د هغه قبلول اجازت دې.

**تشريح:** يو آزاد سړی د غلام آقا ته اوونيل، چه ته خپل دا غلام د يو زر( درهمو) په عوض مکاتب کړه، په دې شرط که ما تا ته زر درهم اداکړل، نو هغه آزاد دې. آقا د هغه د ونيلو مطابق مکاتب کړو. او دې سړی زر درهم اداکړل، نو غلام به په حکم د شرط آزاد وي. يعنې د کتابت په وجه نه بلکه د شرط په وجه به آزاديږي. خکه چې آزادي د يو زر( درهمو) په ادا کاوه معلق وه. او هغه اوموندې شوه، نو آزادي به واقع کيږي. او که غلام ته دې عقد خبر اورسيدلو. او هغه قبول کړو، نو هغه به مکاتب وي. (په خلاف د آئمه ثلاثه ﷺ چې د هغوی په نيز به عقد موقوف نه وي، بلکه باطل به وي). خکه چې کتابت د هغه په اجازت باندې موقوف وو. اود غلام قبلول اجازت دې.

وَلَوْ لَمْ يَقُلْ عَلَى أَنِّي إِنْ أَدَّيْتُ إِلَيْكَ أَلْفًا فَهُوَ حُرٌّ او که دې سړی دا نه وي ونيلې. «إن أديت إليك ألفا فهو حر» فَأَدَّى بِيَا ده اداکړلې. لَا يُعْتَقُ قِيَاسًا نو قياساً به هغه آزاد نه وي. لِأَنَّهُ لَا شَرْطَ خکه چې هيڅ شرط نشته. وَالْعَقْدُ مَوْقُوفٌ عَلَى إِجَازَةِ الْعَبْدِ. او عقد به په اجازت د غلام باندې موقوف وي. وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ يُعْتَقُ او استحساناً آزاديږي. لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ لِلْعَبْدِ الْغَائِبِ فِي تَعْلِيقِ الْعِتْقِ بِأَدَاءِ الْقَائِلِ خکه چې د قائل په ادا کاوه باندې د آزادئ په معلق کيدلو کې د غائب غلام هيڅ نقصان نشته. فَيَصِحُّ فِي حَقِّ هَذَا الْحُكْمِ نو په دې حکم کې به صحيح وي. وَيَتَوَقَّفُ فِي حَقِّ لُزُومِ الْأَلْفِ عَلَى الْعَبْدِ. او غلام باندې د زر( درهمو) لازميدلو په حق کې به موقوف وي.

**تشريح:** اوکه مذکوره سړی دا نه وي ونيل. «على ان أديت إليك ألفا فهو حر» او بدل کتابت ئې ادا کړې وي، نو قياساً به هغه نه آزاديږي. آئمه ثلاثه ﷺ هم ددې قائل دی. خکه چې اوس دلته کې هيڅ شرط نشته. چه ددې په موجود کيدلو آزادي واقع شي. خو استحساناً به آزاديږي. خکه چې د مذکوره سړي په ادا کاوه باندې د آزادئ په معلق کيدلو کې د غائب غلام هيڅ ضرر نشته. خکه چې د عتق په واجبولو کې آقا پخپله مستقل دې. اود مکاتب د قبلولو اړتيا صرف د بدل په وجه دې. او هرکله چې فضولي سړی د احسان په طور بدل کتابت اداکړو، نو ددې حکم په حق کې به عقد کتابت منعقد کيږي. خکه چې د فضولي تصرف د هر يو داسې حکم په حق کې نافذ کيږي. چه هغې کې هيڅ ضرر نه وي. او ښکاره ده. چه د غير بدل کتابت ادا کاوه باندې د غلام په آزاديدلو کې دده هيڅ نقصان نشته. البته د غلام په ذمه د زر( درهمو) لازميدلو په حق کې به عقد موقوف وي.

وَقِيلَ هَذِهِ هِيَ صُورَةُ مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ او په قول د بعضو د کتاب د مسئلې صورت هم دادې. (وَلَوْ أَدَّى الْحُرُّ الْبَدَلَ) اوکه آزاد سړي عوض اداکړو. (لَا يَرْجِعُ عَلَى الْعَبْدِ) نو هغه د غلام نه واپس نشي اخستلې. لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ خکه چې هغه احسان کونکې دې.

**تشريح:** ددې نه دې خبرې اړخ ته اشاره ده. چه د مسئلې د صورت په اړه کې د جامع صغير شارحينو اختلاف کړې دې. بعضو شارحينو هغه صورت ذکرکړې دې. کوم چې علامه مرغيناني ﷫ د مسئلې په پيل کې په ،، وصورة المسألة،، سره ذکرکړې دې. او بعضو دا صورت بيان کړې دې. کوم چې موصوف په ،، ولو لم يقل،، سره ذکرکړې دې.



## د غلام د خپل اړخه اود خپل آقا د غلام د اړخه د عقد كتابت كولو حكم

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَ الْعَبْدُ عَنْ نَفْسِهِ وَعَنْ عَبْدٍ آخَرَ لِمَوْلَاهُ) که کتابت مقرر کړو غلام د خپل اړخه او د خپل آقا د غلام د طرفه، (وَهُوَ غَائِبٌ)، او هغه غائب دې. (فَإِنْ أَدَّى الشَّاهِدُ أَوِ الْغَائِبُ عَتَقَا) نو که ادا کړو حاضر يا غائب (غلام) نو دواړه جائز دی. وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ د مسئلې صورت دادې. أَنْ يَقُولَ الْعَبْدُ چې غلام دا اووائي. كَاتِبْنِي بِأَلْفِ دِرْهَمٍ عَلَى نَفْسِي وَعَلَى فُلَانٍ الْغَائِبِ، چې ما د زر درهمو په عوض زما اود فلانې غائب ذات باندې مکاتب کړه. وَهَذِهِ كِتَابَةٌ جَائِزَةٌ اسْتِحْسَانًا. دا کتابت استحساناً جائز دې. وَفِي الْقِيَاسِ: يَصِحُّ عَلَى نَفْسِهِ لِوِلَايَتِهِ عَلَيْهَا او په قياس کې صرف دده په ذات باندې صحيح دې. پخپل ذات باندې د ولايت په وجه. وَيَتَوَقَّفُ فِي حَقِّ الْغَائِبِ لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ عَلَيْهِ. او د غائب په حق کې موقوف دې. هغه باندې د ولايت نه کيدلو په وجه.

**تشريح:** د يو سړي دوې (دوه) غلامان دی. چه هغوی کې يو حاضر دې. دوهم غائب دې. کوم غلام چې حاضر دې. هغه آقا ته اوونيل. چه ما او فلانې غائب غلام په يو زر درهمو باندې مکاتب کړه. آقا مکاتب کړل. او حاضر غلام قبول کړو. نو د قياس په رو سره دا کتابت صرف د حاضر غلام په حق کې جائز کيدلو پکار دی. خکه چې ده ته صرف پخپل ذات باندې ولايت حاصل دې. اود غائب غلام کتابت موقوف کيدل پکار دی. خکه چې غائب باندې ده ته هيڅ ولايت نشته. لکه چې آئمه ثلاثه ﷺ هم ددې قائل دی.

وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ وجه د استحسان داده. أَنَّ الْحَاضِرَ بِإِضَافَةِ الْعَقْدِ إِلَى نَفْسِهِ ابْتِدَاءً چې حاضر غلام په پيل کې عقد خپل خان اړخ ته مضاف کړې دی. جَعَلَ نَفْسَهُ فِيهِ أَصْلًا وَالْغَائِبَ تَبَعًا، او خپل خان ئې اصل او غائب ئې تابع گرځولې دې. وَالْكِتَابَةُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ مَشْرُوعَةٌ كَالْأَمَةِ إِذَا كُوتِبَتْ او کتابت په داسې طريقه مشروع دې. لکه که وينځه ئې مکاتبه کړله. دَخَلَ أَوْلَادُهَا فِي كِتَابَتِهَا تَبَعًا حَتَّى عَتَقُوا بِأَدَائِهَا نو ددې اولاد تبعاً ددې په کتابت کې داخليږي. ترددې چې د وينځې په ادا کاوه سره اولاد هم آزاديږي. وَلَيْسَ عَلَيْهِمْ مِنَ الْبَدَلِ شَيْءٌ او په اولاد باندې بدل کې هيڅ نه واجبيږي. وَإِذَا أَمْكَنَ تَصْحِيحُهُ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ هرکله چې په دې طريقه د عقد تصحيح ممکن ده. يَنْفَرِدُ بِهِ الْحَاضِرُ نو حاضر غلام به په دې کې منفرد وي. فَلَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ بِكُلِّ الْبَدَلِ نو آقا به د کل مطالبه هم دده نه کوی. لِأَنَّ الْبَدَلَ عَلَيْهِ لِكَوْنِهِ أَصْلًا فِيهِ، خکه چې بدل هم په ده دې. دده د اصيل کيدلو په وجه. وَلَا يَكُونُ عَلَى الْغَائِبِ مِنَ الْبَدَلِ شَيْءٌ او په غائب به په بدل کې هيڅ نه وي. لِأَنَّهُ تَبَعٌ فِيهِ خکه چې هغه په دې کې تابع دې.

**تشريح:** خو استحساناً د دواړو کتابت صحيح دې. خکه چې حاضر غلام عقد کتابت اولاً خپل اړخ ته منسوب کړې دې. او خان ئې اصيل جوړ کړې دې. او غائب ئې خپل تابع جوړ کړې دې. او داسې قسمه کتابت مشروع دې. لکه که يوه وينځه مکاتبه کړې شوه. نو د هغې اولاد تبعاً د هغې په کتابت کې داخليږي. ترددې چې د وينځې په بدل کتابت ادا کاوه باندې دا اولاد هم آزاديږي. او اولاد باندې په بدل کتابت کې هيڅ نه واجبيږي. بهرحال هرکله چې په طريقه د تبع مذکوره عقد صحيح گرځول ممکن دی. نو حاضر غلام ددې په خانله پوره کونکې شو. نو آقا ته به اختيار وي. چه هغه د پوره بدل مطالبه هم ددې حاضر غلام نه اوکړي. غائب غلام باندې به هيڅ واجب نه وي. خکه چې هغه په دې معامله کې تابع دې. اصل نه دې.

### په ذکرشوې مسئله کښې د عقد کتابت اداکولو مسئله

قَالَ (وَأَيُّهُمَا أَدَّى عَتَقَا) و په دوی دواړو کې چې کوم يو کس اداکړو. دواړه به آزاديږي. (وَيُجْبَرُ الْمَوْلَى عَلَى الْقَبُولِ) و آقا به په قبلولو باندې مجبوره کولې شي.

**تشريح:** حاضر او غائب دواړو غلامانو کې چې کوم يو کس بدل کتابت اداکړي. آقا لپاره به مجبوراً اخستل ضروري وي. او هغوی دواړه به آزاديږي. خودا استحسان دې. قياس دادې. چه د غائب په اړه کې به آقا نشي

مجبوره کولې.لکه چې ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.ځکه چې غائب خو صرف متبرع دی.د بدل کتابت مطالبه د هغه سره متعلق نه ده.ځکه چې نه هغه ته د ادا کاوه حکم دی.نه هغه د ادا کاوه په اړه کې پریشان دی.خو استحساناً به ځکه مجبوره کولې شي.چې د غائب په ادا کاوه سره دواړه آزاد شي.

سوال: هرکله نې چې د مسئلې په پیل کې دا ووئیل. «لان ادى الشاهد او الغائب عتقا» نو بیا دلته «ر ايهما ادى عتقا» وئیل خالص تکرار دی.

جواب: دادی چه دا د «و يجبر المولا على القبول» تمهید دی.

أَمَّا الْحَاضِرُ فَلِأَنَّ الْبَدَلَ عَلَيْهِ بهرحال حاضر نو ځکه چې بدل هم په ده دی. وَأَمَّا الْغَائِبُ پاتې شو غائب، فَلِأَنَّهُ يَنَالُ بِهِ شَرَفَ الْحُرِّيَّةِ، وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْبَدَلُ عَلَيْهِ نو ځکه چې هغه به ده په ذریعه د آزادۍ اعزاز حاصلوی.اګرچه بدل په ده نشته. وَصَارَ كَمُعِيرِ الرَّهْنِ او دا د رهن په عاریت سره د ور کاوه پشان شو. إِذَا أَدَّى الدَّيْنَ چې هرکله هغه دین اداکړی. يُجْبَرُ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الْقَبُولِ نو مرتهن به ددې په قبلولو باندې مجبوره کولې شي. لِحَاجَتِهِ إِلَى اسْتِخْلَاصِ عَيْنِهِ وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الدَّيْنُ عَلَيْهِ. ځکه چې هغه ته د خپل مال عین خلاصولو اړتیا دی.اګرچه هغه باندې پور نشته. قَالَ (وَأَيُّهُمَا أَدَّى لَا يَرْجِعُ عَلَى صَاحِبِهِ) او په دوی کې نې چې کوم یو کس اداکړی.هغه نې د بل نه نشي اخستلې. لِأَنَّ الْحَاضِرَ قَضَى دَيْنًا عَلَيْهِ ځکه چې حاضر داسې دین خلاص کړې دی.کوم چې د هغه په ذمه وو. وَالْغَائِبُ مُتَبَرِّعٌ بِهِ غَيْرُ مُضْطَرٍّ إِلَيْهِ. او غائب په دې کې احسان کونکې دی.مجبوره نه دی.

تشريح: که حاضر غلام بدل کتابت اداکړی.نو آقا لپاره به اخستل ځکه لازمي وی.چه بدل کتابت هم دده په ذمه دی.نو دده په ادا کاوه باندې به آقا مجبوره کولې شي.او په دې کې به غائب هم آزادیږی.ځکه چې هغه د حاضر په کتابت کې تبعاً داخل دی.لکه څنګه چې د مکاتبه وینځې بچې د هغې په کتابت کې تبعاً داخلیږی.اود غائب په ادا کاوه باندې به آقا ځکه مجبوره کولې شي.چه بدل کتابت اګرچه د هغه په ذمه واجب نه دی.خو هغه ددې په ذریعه د آزادۍ شرافت حاصلوی.نو هغه بالکل د اجنبی (اوغیر) پشان نشو.بلکه داسې شو.لکه چې یو کس خپل شئ بل کس ته عاریت باندې ورکړو.چه هغه رهن اوکړی.بیا معیر (په عاریت ورکونکې) مرتهن ته د هغه قرضه ورکړله.او شئ راخلاصول نې اوغوښتل.نو مرتهن به ددې په قبلولو باندې مجبوره کولې شي.ځك چې هغه ته د خپل مال خلاصولو اړتیا دی.اګرچه هغه باندې قرضه نشته.

قَالَ (وَلَيْسَ لِلْمَوْلَى أَنْ يَأْخُذَ الْغَائِبَ بِشَيْءٍ) لِمَا بَيَّنَّا او آقا د غائب غلام نه د هیڅ شئ مطالبه نشي کولې. (فَإِنْ قَبِلَ الْعَبْدُ الْغَائِبُ بیا که غائب غلام عقد قبول کړو، أَوْ لَمْ يَقْبَلْ او که نه فَلَيْسَ ذَلِكَ مِنْهُ بِشَيْءٍ نو دا د هغه د اړخه هیڅ نه دی. وَالْكِتَابَةُ لَازِمَةٌ لِلشَّاهِدِ) او کتابت د حاضر په ذمه لازم دی. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ نَافِذَةٌ عَلَيْهِ مِنْ غَيْرِ قَبُولِ الْغَائِبِ ځکه چې کتابت هم په هغه نافذ شو.د غائب د قبلولو نه بغیر. فَلَا تَتَغَيَّرُ بِقَبُولِهِ، كَمَنْ كَفَلَ عَنْ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ نود غائب په قبلولو سره به معتبر نه وی.لکه چې یوکس د غیر د اړخه د هغه د حکم نه بغیر کفالت اوکړو. فَبَلَغَهُ او مکفول عنه ته ددې خبر اورسیدلو. فَأَجَازَهُ او هغه اجازت ورکړو. لَا يَتَغَيَّرُ حُكْمُهُ حَتَّى لَوْ أَدَّى نو ددې حکم نه بدلیږی.تردې که کفیل اداکړو. لَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ، نو هغه نې د مکفول عنه نه نشي اخستلې. كَذَا هَذَا دغه رنګ دلته کې هم دی.

تشريح: او آقا ته د غائب غلام نه د بدل کتابت د مطالبې هیڅ اختیار نشته.ځکه چې هغه د حاضر په کتابت کې تبعاً داخل دی.او د هغه په ذمه هیڅ عوض نشته.بیا که غائب غلام عقد کتابت قبول کړی.او که قبول نکړی.په دې سره هیڅ توپیر نه راځي.بلکه عقد کتابت به د حاضر غلام په ذمه پاته وی.ځکه چې کتابت خو دده په ذمه د غائب د قبول نه بغیر نافذ شوې دی.نو د غائب قبلول یا ردکول به هیڅ موثر نه وی.ددې مثال داسې دی.لکه مثلاً یو کس د بل د اړخه د هغه د حکم نه بغیر کفالت اوکړو.بیا مکفول عنه ته ددې خبر



اورسیدلو.او هغه کفالت جائز اوساتلو.نو حکم نه بدلیږی.بلکه کفیل هم هغه شان متبرع (او احسان کونکې) پاته پاتې کیږی.که کفیل مال د کفالت اداکړو.نو هغه د مکفول عنه نه واپس نشي اخستلې.لکه څنګه چې د مکفول عنه قبلولو سره کفالت کې داسې توپیر نه راځي.چه کفیل ته د واپس اخستلو اختیار حاصل وی.دغه رنګ د غائب غلام په قبلولو سره به هغه د مال ذمه دار نه وی.

### د یو خو خبرو وضاحت

قَالَ (وَإِذَا كَاتَبَتِ الْأَمَةُ عَنْ نَفْسِهَا وَعَنِ ابْنَيْنِ لَهَا صَغِيرَيْنِ که یوې وینځې د خپل ځان او د خپلو دوو (دوه) بچو د ذات کتابت اوکړو. فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز ده. وَأَيُّهُمْ أَدَّى لَمْ يَرْجِعْ عَلَى صَاحِبِهِ و په دوی کې چې څوک هم اداکړی. هغه نې د بل نه نشي اخستلې. وَيُجْبَرُ الْمَوْلَى عَلَى الْقَبُولِ و آقا به په قبلولو باندې مجبوره کولې شي. وَيَعْتِقُونَ) او دوی به واړه آزادیږی. لِأَنَّهَا جَعَلَتْ نَفْسَهَا أَصْلًا فِي الْكِتَابَةِ وَأَوْلَادَهَا تَبَعًا عَلَى مَا بَيَّنَّا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى ځکه چې وینځې خپل ذات په کتابت کې اصیل او خپل اولاد نې تابع ګرځولې دی.لکه څنګه چې موږ په مخکنۍ مسئله کې بیان کړل. وَهِيَ أَوْلَى بِذَلِكَ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ بلکه مور په نسبت د اجنبی (د غیر) نه غوره ده.والله اعلم بالصواب.

د مسئلې وضاحت او ددې مفهوم د ژباړې نه واضح دی.د زیاتې وضاحت اړتیا نشته.البته دلته کې یو خو خبرې د ذکر قابلې دی.① اول دا چې «كاتبت الأمة على نفسها» په معنی د «قبلت عقد الكتابة على نفسها و على ابنين صغيرين لها» ② دویمه داچه شیخ ابوجعفر رحمه الله په کشف الغوامض کې ذکرکړی دی.چه مبسوط کې ددې مسئلې وضع دغلام په حق کې خودلې شوې ده.او په جامع صغیر کې ددې وضع د وینځې په حق کې بیان شوې ده.ددې فائده داده.که د جامع صغیر روایت نه وو.نو د مبسوط په وضع باندې دا وهم کیدای شو.چه ممکن ده.جواز په دې وجه وی.چه پلار ته صغیر باندې ولایت حاصل دی.او مور ته دا ولایت حاصل نه دی.په دې وجه به د مور په صورت کې جواز نه وی.نود جامع صغیر روایت سره دا واضحه شوه.چه مذکوره حکم دغلام او وینځې دواړو په حق کې برابر دی.③ دریمه دا چې د مسئلې وضع د دوې (دوه) ماشومانو بچو په حق کې خودلو کې دا فائده اوشوه.چه په دوی کې څوك هم دا عوض اداکړی.هغه په بل باندې رجوع نشي کولې.او هغوی دواړه به آزادیږی.که د مسئلې وضع صرف د یو صغیر په حق کې وه.نو په داسې صورت کې چا دا وئیلی شو.که په دوې (دوه) خامنو کې یو خوئې بدل کتابت اداکړی.نو دوهم خوئې آزادیدل پکار نه دی.ځکه چې په دوی دواړو کې نه اصالت دی.او نه تبیعت (تابع کیدل) دی.

## باب كتابة العبد المشترك

ژباړه: (دا) باب د مشترك غلام د کتابت (په بیان کې) دی.

تشريح: په قول د صاحب د غاية البيان رحمه الله وجه د مناسبت دا ده.چه عدم اشتراك اصل دی.او اشتراك خلاف اصل دی.اود خلافو اصل ذکر د اصل نه روسته مناسب دی.صاحب د عنایه رحمه الله وغیره شارحینو چې دا توجیه کړې ده.چه «ذكر كتابة الإثنين بعد الواحد لأن الواحد قبل الإثنين» دا توجیه د باب په رومبۍ مسئله کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې (موافق) نه چلیږی.

### د مشترك غلام مکاتب جوړولو حکم

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ کله چې یو غلام د دوې (دوه) سړو په منځ کې مشترك وی. أَذِنَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ چې یو کس خپل انډیوالان ته اجازت ورکړو. أَنْ يُكَاتِبَ نَصِيبَهُ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ چې زما برخه د زر درهمو په عوض کې مکاتب کړه. فَكَاتَبَ هغه مکاتب کړو. وَقَبَضَ بَدَلَ الْكِتَابَةِ و بدل کتابت وصول کړه.

بَعْضَ الْأَلْفِ او په زر ( درهمو) کي ئې بعضو باندې قبضه اوکړله. ثُمَّ عَجَزَ بیا غلام عاجز شو. فَالْمَالُ لِلَّذِي قَبَضَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، نو مال به هم دهغه ( شریك) کس وی.چاچه قبضه کړې ده.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. وَقَالَا: صاحبین رحمهما الله فرمائی. هُوَ مُكَاتَبٌ بَيْنَهُمَا چې غلام به په دواړو کې مکاتب وی. وَمَا أَدَّى فَهُوَ بَيْنَهُمَا) او کوم څه چې ده اداکړی دی.هغه به په دوی دواړو کې مشترك وی. وَأَصْلُهُ اصل ددې دادې. أَنَّ الْكِتَابَةَ تَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ چې کتابت متجزی دې.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. خِلَافًا لَهُمَا بِمَنْزِلَةِ الْإِعْتَاقِ[1])په خلاف د صاحبینو رحمهما الله مرتبه د عتق. لِأَنَّهَا تُفِيدُ الْحُرِّيَّةَ مِنْ وَجْهٍ خکه چې کتابت هم مفید د آزادئ دې.په یوه وجه. فَتَقْتَصِرُ عَلَى نَصِيبِهِ عِنْدَهُ لِلتَّجَزُّؤِ، نو هم دده په برخې (حصې) به پاتې وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د تجزی په وجه.

تشریح: یو غلام د زید او عمرو په منځ کې مشترك دې.زید عمر ته اوونیل.چه په دې غلام کې زما برخه د زر درهمو په عوض مکاتب کړه.او بدل کتابت وصول کړه.عمرو هم دغه ډول اوکړل.او د غلام نه ئې څه بدل کتابت هم وصول کړو.خود پاته بدل کتابت ادا کاوه نه غلام عاجز شو.نو عمرو چې کوم بدل کتابت وصول کړې دې.هغه به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم دده وی.دصاحبینو رحمهما الله په نیز به غلام په دواړو کې مکاتب وی.او کوم بدل کتابت ئې چې اداکړې دې.هغه به هم د دواړو وی.علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی.ددې اختلاف اصل دادې.چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز کتابت متجزی دې.یعنی ددې ټکړې کیداې شی.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز متجزی نه دې.لکه څنګه چې اعتاق کې هم داسې اختلاف دې.نو کتابت په مرتبه د اعتاق دې.خکه چې د کتابت په ذریعه هم په یوه لاره آزادی حاصلیږی.ددې مطلب دادې.چه هغه د قبضې په لحاظ سره آزادیږی.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به کتابت هم ددې شریك په برخې (حصې) باندې پاتې وی.چا چې مکاتب کړې دې.

قوله:بین رجلین.... بعضو شارحینو ذکرکړی دی.چه په بعضو نسخو کې د،، بین رجلین،، په ځائی،، بین شریکین،، دې.او هم دا غوره دې.په قول د صاحب د نتائج وجه د اولویت داده.چه ددې مسئلې حکم عام دې.غلام که په دوې (دوه) سړو کې مشترك وی.او که د یو سړی او یوې ښځې په منځ کې یا د دوې (دوه) ښځو په منځ کې مشترك وی.او لفظ دشریکین ټولو ته ګډ دې.نو په دې معنی چې شریك په وزن د فعیل په معنی د مفعول دې.او د،،شرکه فی کذا،، څخه دې.او فعیل په معنی د مفعول کې مذکر او مؤنث دواړه برابر وی.یا په دې معنی چې لفظ د شریك په اسماء جامده کې شمار شوې دې.لکه څنګه چې د لفظ تابع وغیره په اړه کې وئیلی شوی دی.او هم په دې حیثیت سره توابع ته د تابع جمع وئیلې شوې ده.نودا به هم مذکر او مؤنث هر یو ته برابر ګډ وی.بیا صاحب د عنایه رحمه الله د،،بین الشریکین،، والا نسخه اختیار کړې ده.چه ددې تفسیر سعدی چلپی په،،ای بین الرجلین،، سره کړې دې.خودا تفسیر ډیر عجیبه دې.خکه چې هرکله ددې مسئلې حکم صرف دې صورت سره خاص نه دې.چه غلام د دوې (دوه) سړو په منځ کې مشترك وی.نو بیا لفظ د،، شریکین،، چې رجلین او غیر رجلین دواړو ته عام دې.ددې تفسیر په رجلین سره کول بې وجه دی.

وَفَائِدَةُ الْإِذْنِ او د اجازت فائده داده. أَنْ لَا يَكُونَ لَهُ حَقُّ الْفَسْخِ كَمَا يَكُونُ لَهُ إِذَا لَمْ يَأْذَنْ، چې ده ته حق د فسخ حاصل نشی.لکه څنګه چې د اجازت نه ور کاوه په صورت کې وو. وَإِذْنُهُ لَهُ بِقَبْضِ الْبَدَلِ إِذْنٌ لِلْعَبْدِ بِالْأَدَاءِ او د عوض د قبضه کاوه اجازت ورکول، غلام ته د ادا کاوه اجازت ورکول دی. فَيَكُونُ مُتَبَرِّعًا بِنَصِيبِهِ عَلَيْهِ نو هغه د خپلې برخې (حصې) په ده باندې احسان کونکې شو. فَلِهَذَا كَانَ كُلُّ الْمَقْبُوضِ لَهُ. په دې وجه ټوله برخه په

[1]) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى العناية (١٣٣/٨) ونتائج الأفكار(١٣٤/٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٣/١)_



کومه ئې قبضه کړې ده.هم دهغه به وی. وَعِنْدَهُمَا الْإِذْنُ بِكِتَابَةِ نَصِيبِهِ إِذْنٌ بِكِتَابَةِ الْكُلِّ لِعَدَمِ التَّجَزُّؤِ او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د خپلې برخې (حصې) د کتابت اجازت ورکول د مکاتب کاوه اجازت دې.د عدم تجزی په وجه. فَهُوَ أَصِيلٌ فِي النِّصْفِ وَكِيلٌ فِي النِّصْفِ نو هغه په نصف کې اصیل او نصف کې وکیل دې. فَهُوَ بَيْنَهُمَا نو غلام په دواړو کې مکاتب شو. وَالْمَقْبُوضُ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا او قبض شوې عوض په دواړو کې مشترك شو. فَيَبْقَى كَذَلِكَ بَعْدَ الْعَجْزِ نود عاجز کیدلو نه روسته به هم دغه ډول مشترك وی.

تشریح: سوال۞د سوال مقدر څواب دې.سوال دادې.چه هرکله د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز کتابت متجزی دې.نو بیا د یو شریك بل شریك ته د کتابت ور کاوه اجازت ورکول څه فائده ورکوی ؟

جواب۞ حاصل د څواب دادې.چه د اجازت ور کاوه فائده داده.چه کوم شریك مکاتب کړې نه دې.هغه ته د کتابت فسخ کاوه اختیار حاصل نه وی.کوم ( اختیار) چې ده ته د اجازت نه بغیر د مکاتب کاوه په صورت وو.او شریك ته د عوض وصولولو اجازت ورکول، غلام ته د ادا کاوه اجازت ورکول دی.نو هغه غلام باندې د خپلې برخې (حصې) احسان کونکې شو.په دې وجه چې شریك کوم څه وصول کړی دی.هغه واړه د هغه شو.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز د خپلې برخې (حصې) د کتابت اجازت ورکول، د کل غلام مکاتب کاوه اجازت ورکول دی.خکه چې ددوی په نیز کتابت نه متجزی کیږی.نو هغه د نصف غلام په مکاتب کاوه کې اصیل دې.او په نصف کې د شریك د اړخه وکیل دې.نو غلام د دواړو په منځ کې مکاتب شو.او وکیل چې کوم څه وصول کړی دی.هغه به هم په دوی دواړو کې مشترك وی.بیا دغلام د عاجز کیدلو نه روسته به هم دغه ډول په دواړو کې مشترك وی.

فائده۞ که یو شریك بل شریك ته د کتابت اجازت ورکړو.نو کتابت به جائز وی.( د امام مالك رحمه الله او په یو قول کې د امام شافعی رحمه الله په دې کې اختلاف دې).او زموږ په نیز د اجازت نه بغیر هم جائز دې.خو په دې صورت کې به دوهم شریك ته د کتابت اختیار وی.( د امام مالك او امام شافعی رحمهما الله په نیز به جائز نه وی) د امام احمد، حسن، او د ابن ابی لیلی رحمهم الله په نیز د اجازت نه بغیر به هم کتابت جائز وی.او دوهم شریك ته به د کتابت ختمولو اختیار نه وی.

## مشترکې وینځې سره د وطی حکم

قَالَ (وَإِذَا كَانَتْ جَارِيَةٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ كَاتَبَاهَا یوه وینځه په دوې (دوه) سړو کې مشترك ده.چه هغه دوی دواړو مکاتبه کړله. فَوَطِئَهَا أَحَدُهُمَا بیا یو شریك هغې سره وطی اوکړله. فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او هغې بچې راوړلو. فَادَّعَاهُ واطی د هغې دعوه اوکړله. ثُمَّ وَطِئَهَا الْآخَرُ بیا دوهم شریك وطی اوکړله. فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ او بچې پیدا شو. فَادَّعَاهُ او دوهم کس دعوه اوکړله. ثُمَّ عَجَزَتْ بیا وینځه عاجزه شوه. فَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ) نو دا به د مدعی اول ام ولد وی.

تشریح: یوه وینځه په دوې (دوه) سړو کې مشترکه وه.هغه دواړو مکاتبه کړله.بیا یو شریك ددې سره وطی اوکړله.او بچې پیدا شو.او واطی د بچی دعوه اوکړله.چه دا زما دې.بیا دوهم شریك وطی اوکړله.د هغې نه هم بچې پیدا شو.او هغه هم د بچی دعوه اوکړله.او وینځه د کتابت ادا کاوه نه عاجزه شوه.نو وینځه به د رومبنی واطی ام ولد وی.

لِأَنَّهُ لَمَّا ادَّعَى أَحَدُهُمَا الْوَلَدَ خکه چې هرکله په دوی کې یو کس دعوه اوکړله. صَحَّتْ دَعْوَتُهُ نو د هغه دعوه صحیح شوه. په وینځه کې لِقِيَامِ الْمِلْكِ لَهُ فِيهَا دده د ملکیت قائمیدلو په وجه. وَصَارَ نَصِيبُهُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ، لِأَنَّ الْمُكَاتَبَةَ لَا تَقْبَلُ النَّقْلَ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ خکه چې مکاتبه ددې قابله نه وی.چه د یو ملك نه دوهم ملك اړخ ته منتقل شی. فَتَقْتَصِرُ أُمُومِيَّةُ الْوَلَدِ عَلَى نَصِيبِهِ كَمَا فِي الْمُدَبَّرَةِ الْمُشْتَرَكَةِ، او دده برخه ام ولد کیدل به هم دده په برخه باندې منحصر وی.لکه څنګه چې مدبره مشترکه کې دی.

تشريح: خكه چې هركله په دوى كې يو د بچي دعوه اوكړله.نود ملك د قيام په وجه د هغه دعوه صحيح شوه.او د هغه برخه ام ولد شوه.په دې وجه چې مكاتبه كې استيلاد د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز متجزى كيږي. نو ام ولد كيدل به هم دده برخې (حصې) پورې منحصر وي.لكه چې يوه وينخه په دوې (دوه) كې مشترك وه.دواړو هغه مدبره كړله.بيا د يو شريك په وطى سره بچى پيدا شو.او واطى د هغې دعوه اوكړله.نو نسب هم د هغه نه ثابتيږي.او ام ولد كيدل بالاجماع هم د هغه برخې (حصې) پورې منحصر كيږي.

| |
|---|
| فَإِذَا ادَّعَى الثَّانِي وَلَدَهَا الْأَخِيرَ او كله چې دوهم شريك د دوهم بچي دعوه اوكړله. صَحَّتْ دَعْوَتُهُ لِقِيَامِ مِلْكِهِ ظَاهِرًا نو د هغه دعوه هم صحيح شوه.په بنكاره دده د ملك قائميدلو په وجه. ثُمَّ إِذَا عَجَزَتْ بَعْدَ ذَلِكَ بيا هركله چې دا روسته عاجزه شوه. جُعِلَتِ الْكِتَابَةُ كَأَنْ لَمْ تَكُنْ نو كتابت د معدوم په شان شو. وَتَبَيَّنَ أَنَّ الْجَارِيَةَ كُلَّهَا أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ او دا بنكاره شوه.چه پوره وينخه د رومبى مدعى ام ولد ده. لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ مِنَ الِانْتِقَالِ خكه چې منتقل كيدلو نه مانع امر زائل شو. وَوَطْؤُهُ سَابِقٌ او هم دده وطى وړاندې ده. |

تشريح: او هركله چې دوهم شريك دعوه اوكړله.نو دهغه دعوه هم صحيح شوه.خكه چې په بنكاره د هغه ملك هم قائم دې.خو هركله چې وينخه د بدل كتابت نه عاجزه شوه.نو كتابت ختم شو.او پوره وينخه د رومبى مدعى ام ولد شوه.خكه چې ام ولد كيدل، كوم چې د رومبي برخې (حصې) پورې محدود وو.هغه دې لپاره وو.چه مكاتب د يو ملك نه دوهم ملك ارخ ته نه منتقل كيږي.او هركله چې د عجز په وجه كتابت ختم شو.نودا مانع ختم شو.

### مشتركې وينځې سره د وطى حكم

| |
|---|
| (وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهَا) او هغه به د خپل شريك لپاره ضامن وي.د وينځې د نصف قيمت. لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَهُ لَمَّا اسْتَكْمَلَ الِاسْتِيلَادَ خكه چې هغه استيلاد پوره كړې دې.اود بل د برخې (حصې) ملكيت ئې حاصل كړې دې. (وَنِصْفَ عُقْرِهَا) لِوَطْئِهِ جَارِيَةً مُشْتَرَكَةً او ضامن به وي.دې د نصف عقر (مهر) مشترك وينځې سره د وطى كاوه په وجه. (وَيَضْمَنُ شَرِيكُهُ كَمَالَ عُقْرِهَا) او ضامن به وي دده شريك د پوره مهر. وَقِيمَةَ الْوَلَدِ او د بچي د قيمت. (وَيَكُونُ ابْنَهُ) او بچي به دده خوئې وي. |

تشريح: اوس به رومبني واطى دوهم واطى ته د وينځې نصف قيمت وركوي.خكه چې هغه دده د برخې (حصې) مالك شو.اود وينځې نصف مهر به وركوي.خكه چې ده مشترك وينځې سره وطى كړې ده.او دوهم واطى به پوره مهر وركوي.خكه چې ده په حقيقت كې د بل كس ام ولد سره وطى كړې ده.اود دوهم بچي قيمت به هم وركوي.او دا بچي به هم دده گرځولې شي.

| |
|---|
| لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَغْرُورِ خكه چې دا په منزله د مغرور (دهوكه كړې شوى) دې. لِأَنَّهُ حِينَ وَطِئَهَا كَانَ مِلْكُهُ قَائِمًا ظَاهِرًا. خكه چې كله ده وطى كړې وه.هغه وخت په بنكاره دده ملكيت قائم وو. وَوَلَدُ الْمَغْرُورِ ثَابِتُ النَّسَبِ مِنْهُ حُرٌّ بِالْقِيمَةِ عَلَى مَا عُرِفَ او د دهوكه كړې شوى د بچي نسب دده نه ثابت او په قيمت سره آزاد وي.لكه څنگه چې معلومه شوې ده. لَكِنَّهُ وَطِئَ أُمَّ وَلَدِ الْغَيْرِ حَقِيقَةً خو ده په حقيقت كې د غير ام ولد سره وطى كړې ده. فَيَلْزَمُهُ كَمَالُ الْعُقْرِ نو په ده به پوره عقر لازم وي. |

تشريح: خكه چې دا د دهوكه كړې شوى بچي دې.اود دهوكه كړې شوى بچي ثابت النسب او په قيمت سره آزاد وي.خو چونكه داسې بنځې سره وطى كړې ده.چه دا په حقيقت كې د بل ام ولد ده.خكه به په ده پوره عقر (مهر) واجب وي.

تنبيه: په «و يضمن شريكه كمال العقر و قيمة الولد» باندې دا اعتراض كيږي.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوهم شريك (واطى ثانى) د رومبى شريك لپاره د قيمت ضامن كيدل پكار نه دى.خكه چې د ام ولد د



بچي حكم پخپله د ام ولد په شان دې.اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ام ولد هيڅ قيمت نشته.نو دغه ډول به ددې د بچي هم څه قيمت نه وي؟

ددې خواب① بعضو دا وركړې دې.چه د بچي د قيمت ضامن كيدل د صاحبينو رحمهما الله په قول مبنى دې.خو په قول د صاحب د عنايه رحمه الله دا خواب هيڅ نه دې.خكه چې دا خواب د «و هذا الذى ذكرناه كله قول ابى حنيفة» بالكل منافى دې.② صاحب د عنايه رحمه الله ددې دوهم خواب دا ذكركړې دې.چه د ام ولد د تقوم په اړه كې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دى.نود يو روايت مطابق به بچي قيمت والا وي. «... فكان حرا بالقيمة» په دې باندې سعدى چلپى ونيلى دى.چه دا خواب ددې مخالف دې.كوم چې پخپله صاحب د عنايه رحمه الله په باب بيع الفاسد كې ونيلى وو.چه دوې (دوه) روايتونه خو د مدبر په اړه كې دى.باتې شو ام ولد، نو په دې اړه كې د امام ابوحنيفه رحمه الله روايات متفق دى.چه په بيع او غصب سره به نه ضامن كيږي.خكه چې د ام ولد ماليت قيمت والا نه دې.

③ صاحب د نتائج رحمه الله فرمائي.چه دا مخالفت هيڅ مضر نه دې.چه دلته كې پخپله علامه مرغينانى رحمه الله دا صراحت كړې دې.چه داما ابوحنيفه رحمه الله نه د ام ولد د تقوم روايات هم متحقق دى. «حيث قال: و إن ماتت ام الولد و المدبر فى يد المشترى فلا ضمان عليه عند أبى حنيفة رحمه الله و قالا عليه قيمتها و هو رواية عنه» ددې نه علاوه مذكوره دوهم خواب د تاج الشريعة اود صاحب د كفايه رحمه الله دې.صاحب د عنايه رحمه الله خو صرف نقل كونكې دې.او دوى دواړو په باب البيع الفاسد كې د ام ولد په اړه كې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه نه كيدل نه دى ذكركړې.

| |
|---|
| (وَأَيُّهُمَا دَفَعَ الْعُقْرَ إِلَى الْمُكَاتَبَةِ جَازَ) او په دوى كې چې كوم يو كس مكاتبه ته مهر وركړو جائز دې. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ مَا دَامَتْ بَاقِيَةً فَحَقُّ الْقَبْضِ لَهَا لِاخْتِصَاصِهَا بِمَنَافِعِهَا وَأَبْدَالِهَا خكه چې كتابت تركومه پورې پاتې وي.په مهر باندې د قبضې حق هم دې ته وي.د خپلو منافعو اود عوضونو د اختصاص په وجه. وَإِذَا عَجَزَتْ او هركله چې دا عاجزه شوه. تُرَدُّ الْعُقْرُ إِلَى الْمَوْلَى لِظُهُورِ اخْتِصَاصِهِ نو واپس كوى به مهر آقا ته.د هغه د اختصاص بنكاره كيدلو په وجه. (وَهَذَا) الَّذِي ذَكَرْنَاهُ او دا څه چې مونږ ذكركړل (كُلُّهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ) (١) واړه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى. |

تشريح: بيا په شريكينو كې چې كوم يو كس هم مكاتبې ته ددې د عاجز كيدلو نه وړاندې مهر وركړو.نو جائز دې.خكه چې تركومه پورې كتابت پاتې دې.د مهر وصولولو حق مكاتبې ته پخپله دې.خكه چې دې ته د خپل ذات د منافعو او معاوضاتو اختصاص حاصل دې.اود عاجز كيدو په صورت كې به مهر آقا ته خكه واپس وركوى.چه اوس د آقا اختصاص بنكاره شو.دا واړه تفصيل چې كوم ذكركړې شوې دې.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې.

### په ذكر شوى صورت كنبې د مشترك وينځې د ام ولد مسئله

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: صاحبين رحمهما الله فرمائي. هِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ چې دا ام ولد ده.د رومبى مدعى. وَلَا يَجُوزُ وَطْءُ الْآخَرِ اود دوهم (شريك) وطى كول جائز نه دې. لِأَنَّهُ لَمَّا ادَّعَى الْأَوَّلُ الْوَلَدَ خكه چې كله رومبى مدعى د بچي دعوه اوكړله. صَارَتْ كُلُّهَا أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو هغه پوره دده ام ولد شوه. لِأَنَّ أُمُومِيَّةَ الْوَلَدِ يَجِبُ تَكْمِيلُهَا بِالْإِجْمَاعِ مَا أَمْكَنَ، خكه چې د ام ولد كيدلو تكميل په اجماع سره ضرورى دې.تركومه پورې چې ممكن وي. وَقَدْ أَمْكَنَ بِفَسْخِ |

(١) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كذا فى الهندية (١٦١٥) وكنز(٣٢٩) وملتقى الأبحر (٢١١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٤١٢)_

الْكِتَابَةِ او دلته کي فسخ د کتابت په ذريعه ممکن ده. لِأَنَّهَا قَابِلَةٌ لِلْفَسْخِ ځکه چي کتابت قابل د فسخ دي. فَتُفْسَخُ فِيمَا لَا تَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُكَاتَبَةُ نو دا به فسخ کولي شي، په هغه امر کي کوم کي چي مکاتبه ته ضرر اونه رسيږي. وَتَبْقَى الْكِتَابَةُ فِيمَا وَرَاءَهُ، او ددي نه علاوه کي به پاته ساتلي شي.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله په نيز به وينځه د واطي اول ام ولد وي. او د دوهم شريك وطي کول به حلال نه وي. (يعني وطى به داسي نه وي. کوم چي د نسب ثابتونکي وي. ګنی د وطی عدم جواز خو بالاتفاق دي) په دي وجه کله چي شريك اول د بچي دعوه اوکړله، نو مکاتبه مذکوره پوره دده ام ولد شوه. ځکه چي د استيلاد تکميل چي ترکومه پوري ممکن وي، بالاجماع ضروري دي. او دلته کي د کتابت فسخ کاوه په ذريعه ددي تکميل ممکن دي. ځکه چي عقد کتابت قابل د فسخ دي. نو په کوم امر کي چي مکاتبه ته هيڅ نه رسيږي هغې به کي عقد کتابت فسخ کولي شي. او ښکاره ده. چه دلته د هغې په ام ولد کيدلو کي هيڅ نقصان نشته. بلکه فائده ده. چه هغه به د بيع او هبه محل نه پاتي کيږي. او د آقا د مرګ نه روسته به مفت آزاديږي. او ددي نه په علاوه کي يعني د مذکوره وينځي خپله مزدوري او د خپل بچي د مزدورئ په حقدار کيدلو کي به کتابت پاته پاتي کيږي.

بِخِلَافِ التَّدْبِيرِ لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الْفَسْخَ، په خلاف د مدبره کولو، چه دا قابل د فسخ نه ده.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله د قياس «كما في المدبرة المشتركة» خواب دي. ددي حاصل دادي. چه کتابت د تدبير خلاف دي. په دي معنی چي کتابت د فسخ قابل دي. او مدبره کول ددي قابل نه دي. نو مشترکه مدبره نه چي کله د شريك اول د ام ولد جوړولو نه پس، دوهم شريك ام ولد جوړه کړله. نو ددي استيلاد صحيح شو. ځکه موږ وئيلي وو. چه د ام ولد کيدلو تکميل چي ترکومه پوري ممکن وي، ضروري دي. او دلته کي ددي امکان نشته. ځکه چي مدبره کول قابل د فسخ نه دي.

وَبِخِلَافِ بَيْعِ الْمُكَاتَبِ او په خلاف د مکاتب د بيع، لِأَنَّ فِي تَجْوِيزِهِ إِبْطَالَ الْكِتَابَةِ چي ددي په جائز ساتلو کي کتابت باطلول دي. إِذِ الْمُشْتَرِي لَا يَرْضَى بِبَقَائِهِ مُكَاتَبًا. ځکه چي مشتري به نه راضي کيږي. دده په مکاتب پاته ساتلو باندي.

**تشريح:** دا د يو سوال خواب دي. چه په مدبره باندي وارديږي. او هغه دا چي لکه څنګه تا د استيلاد د صحت په ضمن کي کتابت فسخ کړي دي. هم دغه ډول کله چي مکاتب خرڅ کړي شي. نو د بيع د صحت په ضمن کي تا د کتابت فسخ ته جائز ولي نه دی وئيلی؟

حاصل د خواب دادي. چه د بيع په جائز ساتلو کي د کتابت باطليدل لازميږي. ځکه چي مشتري به په دي خبره نه راضي کيږي. چه هغه مکاتب پاته پاتي شي. او د کتابت په بطلان سره به مکاتب ته ضرر رسيږي. حالانکه د کتابت فسخ هم په دي صورت کي صحيح کيداي شي. په کوم چي د مکاتب ضرر نه وي.

وَإِذَا صَارَتْ كُلُّهَا أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او هر کله چي پوره وينځه دده ام ولد شوه. فَالثَّانِي وَطِئَ أُمَّ وَلَدِ الْغَيْرِ نو دوهم شريك د غير وينځي سره وطی کونکي شو. (فَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ الْوَلَدِ مِنْهُ) نو دده څخه به نسب نه ثابتيږي. غَيْرَ أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْحَدُّ عَلَيْهِ لِلشُّبْهَةِ او هغه به په ده باندي د شبه په وجه، حد نه واجبيږي. (وَلَا يَكُونُ حُرًّا عَلَيْهِ بِالْقِيمَةِ) په قيمت سره هم نه آزاديږي. صرف دومره خبره ده. چه په ده به (وَيَلْزَمُهُ جَمِيعُ الْعُقْرِ) او په ده به پوره عقر (مهر) لازم وي. لِأَنَّ الْوَطْءَ لَا يَعْرَى عَنْ إِحْدَى الْغَرَامَتَيْنِ، ځکه چي وطی د يو تاوان نه خالي نه وي.

**تشريح:** دا تيرشوی قول «لأنه لما إدعى الأول الولد صارت كلها أم ولد له» سره متصل دي. مطلب دادي. چه هر کله پوره وينځه د رومبي واطي ام ولد شوه. نو دوهم شريك داسي وينځي سره وطی کونکي شو. چه هغه د غير ام ولد ده. نو دده څخه به نسب نه ثابتيږي. او هغه به په قيمت نه آزاديږي. صرف دومره خبره ده. چه په دوهم واطي باندي به د شبه په وجه حد نه واجبيږي. او هغه د دواړو شريکانو په منځ کي ددي وينځي د مکاتبه



کيدلو شبه ده. په هغه دليل کوم چي امام ابوحنيفه رحمه الله ذکر کړي دي. البته د هغه په ذمه به پوره عقر (مهر) واجب وي. ځکه چي په حد يا مهر کي د يو کيدل ضروري دي.

وَإِذَا بَقِيَتِ الْكِتَابَةُ او هر کله چي کتابت پاته پاتي شو. وَصَارَتْ كُلُّهَا مُكَاتَبَةً لَهُ، او هغه پوره دده مکاتبه شوه. قِيلَ نو وئيلي شوي دي. يَجِبُ عَلَيْهَا نِصْفُ بَدَلِ الْكِتَابَةِ چي په ده به نصف بدل کتابت واجب وي. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ انْفَسَخَتْ فِيمَا لَا تَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُكَاتَبَةُ ځکه چي کتابت په داسي امر کي فسخ شو. چه په دي کي د مکاتبه ضرر اونشو. وَلَا تَتَضَرَّرُ بِسُقُوطِ نِصْفِ الْبَدَلِ. او په نصف بدل ساقطولو کي دده هيڅ نقصان نشته.

**تشريح:** دا د تيرشوی قول «و تبقى الكتابة فيما وراءه» متصل دي. مطلب دادي. چه هر کله کتابت پاته پاتي شو. او پوره وينځه دده مکاتبه شوه. نو اوس د بعضو په قول په ده به نصف بدل کتابت واجب وي. ځکه چي کتابت هم په دي امر کي فسخ شوي دي. په کوم کي چي د مکاتبه نقصان نه وي. او په نصف عوض ساقطولو کي ددي هيڅ نقصان نشته. شيخ زاهدی او ابومنصور ماتريدی رحمهما الله هم دا اختيار کړي دي.

وَقِيلَ او وئيلي شوي دي. يَجِبُ كُلُّ الْبَدَلِ چي پوره عوض به واجب وي. لِأَنَّ الْكِتَابَةَ لَمْ تَنْفَسِخْ إِلَّا فِي حَقِّ التَّمَلُّكِ ضَرُورَةً ځکه چي کتابت فسخ شوي نه دي. خو په حق د تملك سره. په وجه د ضرورت. فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ سُقُوطِ نِصْفِ الْبَدَلِ نو ددي اثر به نه ښکاره کيږي. د نصف بدل ساقطولو په حق کي. وَفِي إِبْقَائِهِ فِي حَقِّهِ نَظَرٌ لِلْمَوْلَى او ددي په پاته ساتلو کي د آقا په حق کي بهتري ده. وَإِنْ كَانَ لَا تَتَضَرَّرُ الْمُكَاتَبَةُ بِسُقُوطِهِ، اګرچه ددي په ساقطولو کي د مکاتبه هيڅ نقصان نشته.

**تشريح:** او بعضو يعني عام مشائخو وئيلي دي. چه پوره عوض به واجب وي. ځکه چي کتابت صرف د ارتيا لپاره د تملك حاصليدلو په وجه فسخ شوي دي. نو په نصف عوض ساقطيدلو کي به د کتابت د فسخ کاوه اثر نه ښکاره کيږي. اود نصف بدل کتابت په حق کي د عقد کتابت په پاته ساتلو کي د آقا (مستولد اول) رعايت دي. اګرچه د بدل په سقوط سره مکاتبه ته هيڅ ضرر نه لاحق کيږي. نو د آقا اړخ ته ترجيح ورکړي شو. ځکه چي کتابت کي اصل عدم فسخ ده.

وَالْمُكَاتَبَةُ هِيَ الَّتِي تُعْطِي الْعُقْرَ لِاخْتِصَاصِهَا بِأَبْدَالِ مَنَافِعِهَا. او د مکاتبه عقر (مهر) به هم دي ته ورکولي شي. ددي د اختصاص په وجه. د خپلو منافعو په عوض سره. وَلَوْ عَجَزَتْ او که دا عاجزه شوه. وَرُدَّتْ فِي الرِّقِّ او دوباره وينځه کړي شوه. تُرَدُّ إِلَى الْمَوْلَى لِظُهُورِ اخْتِصَاصِهِ عَلَى مَا بَيَّنَّا نو آقا اړخ ته به واپس کولي شي. دده د اختصاص ښکاره کيدلو په وجه.

**تشريح:** اود مکاتبه عقر (مهر) به هم دي ته ورکولي شي. ځکه چي د خپلو منافعو د عوض هم دا زياته مستحقه ده. او که هغه د عاجز کيدلو په وجه دوباره وينځه کړي شوه. نو ددي آقا ته به واپس کولي شي. ځکه چي اوس ددي د آقا (مستولد اول) اختصاص ښکاره شو. لکه څنګه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول په تعليل کي بيان شوی دی.

### په ذکرشوي مسئله کښي د ضمان يو بل صورت

قَالَ (وَيَضْمَنُ الْأَوَّلُ لِشَرِيكِهِ فِي قِيَاسِ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ نِصْفَ قِيمَتِهَا مُكَاتَبَةً) او شريك اول به ضامن وي. د خپل شريك دپاره. د امام ابويوسف رحمه الله د قول په قياس کي. د وينځي د نصف قيمت، د مکاتبه کيدلو په لحاظ سره. لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَ شَرِيكِهِ ځکه چي هغه د خپل شريك د برخي (حصي) مالك شو. وَهِيَ مُكَاتَبَةٌ او په دي حالت کي چي هغه مکاتبه ده. فَيَضْمَنُهُ مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا نو ددي به ضامن وي. که مالداره وي. اوکه غريب وي. لِأَنَّهُ ضَمَانُ التَّمَلُّكِ ځکه چي دا ضمان د تملك دي.

**تشريح:** بيا به رومبي واطي د خپل شريك دپاره، د امام ابويوسف رحمه الله د قياس مطابق د مکاتبه کيدلو په

حساب سره، د مذکوره وینځې د نصف قیمت ضامن وي. که یو غلام د دوو (دوه) شریکانو په منځ کې مشترك مکاتب وي. او په دوي کې یو شریك دا آزاد کړي. نو ددې مسئلې (د اعتاق په صورت کې) د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د غلام آزادونکی شریك باندې چې کوم قیمت دده د مکاتب کاوه په حالت کې دی هغې نصف به واجب وي. بیا په مذکوره د استیلاد په مسئله کې د امام ابویوسف رحمه الله د قول قیاس دادې. چه دلته کې هم رومبئ واطی د خپل شریك لپاره د مذکوره وینځې د مکاتب کیدلو په حالت کې د کوم قیمت وي. د هغې د نصف ضامن کیدل پکار دی. ځکه چې ده د خپل شریك د برخې (حصې) ملکیت د وینځې د مکاتبه کیدلو په حالت کې حاصل کړې دې. نو دده د برخې (حصې) د قیمت به ضامن وي. که هغه مالداره وي. او که غریب وي. ځکه چې دا ضمان د تملك دې. د هغه دلیل په وجه چې په دې کې د وطی د حلت او خدمت اخستلو وغیره د ملك آثار ښکاره شوي دي. او ضمان د تملك په غریب کیدو یا مالداره کیدو سره نه بدلیږي.

(وَفِي قَوْلِ مُحَمَّدٍ: يَضْمَنُ الْأَقَلَّ مِنْ نِصْفِ قِيمَتِهَا) او د امام محمد رحمه الله په قول کې به ضامن وي. ددې د نصف قیمت، (وَمِنْ نِصْفِ مَا بَقِيَ مِنْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ) او د پاته مانده بدل کتابت د نصف نه د کم. (لِأَنَّ حَقَّ شَرِيكِهِ فِي نِصْفِ الرَّقَبَةِ عَلَى اعْتِبَارِ الْعَجْزِ) ځکه چې دده د شریك حق په نصف رقبه کې دې. د عاجز کیدلو په اعتبار سره. (وَفِي نِصْفِ الْبَدَلِ عَلَى اعْتِبَارِ الْأَدَاءِ) او په نصف عوض کې دې. د ادا کاوه په اعتبار سره. (فَلِلتَّرَدُّدِ بَيْنَهُمَا يَجِبُ أَقَلُّهُمَا) نو په دواړو کې د تردد په وجه په دوي دواړو کې چې کوم کم دې. هغه به واجب وي.

**تشریح:** او د امام محمد رحمه الله په قول کې ددې د نصف قیمت اود پاته مانده کتابت د نصف عوض نه چې کوم کم وي. د هغې به ضامن وي. ځکه چې د شریك حق دوي (دوه) اعتبارونو سره متعلق دې. یو دا که دا مکاتبه د بدل کتابت ادا کاوه نه عاجزه شي. نو دده حق نصف رقبه دې. او که هغه بدل کتابت ادا کړي. نو د هغه حق نیم عوض دې. نود شریك د حق متردد بین الاعتبارین کیدلو په وجه چې کوم کمتر وي. هغه به واجب وي. ځکه چې په دې کې کوم زیات کم وي. هغه یقیني دې.

### د مدبره په صورت کښې د بدل ادا کولو نه د عاجز کیدو مسئله

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الثَّانِي لَمْ يَطَأْهَا) او که دوهم (شریك) ددې سره وطی نه ده کړې. (وَلَكِنْ دَبَّرَهَا) بلکه دا ئې مدبره کړله. (ثُمَّ عَجَزَتْ) بیا هغه عاجزه شوه. (بَطَلَ التَّدْبِيرُ) نو تدبیر (مدبره کول) به باطل وي. (لِأَنَّهُ لَمْ يُصَادِفِ الْمِلْكَ) ځکه چې هغه ملك سره نه دې متصل شوې. (أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ) دا د صاحبینو رحمهما الله په قول خو ښکاره دې. (لِأَنَّ الْمُسْتَوْلِدَ تَمَلَّكَهَا قَبْلَ الْعَجْزِ) ځکه چې ام ولد جوړونکې د هغې د عاجز کیدلو نه وړاندې د هغې مالك شو. (وَأَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ فَلِأَنَّهُ بِالْعَجْزِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَهُ مِنْ وَقْتِ الْوَطْءِ) اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ځکه چې د عاجز کیدلو نه دا ښکاره شوه. چه هغه د وطی د وخت نه د شریك د برخې (حصې) مالك شوې وو. (فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ لَمْ يُصَادِفْ مِلْكَهُ) نودا ښکاره شوه. چه تدبیر د غیر ملك سره متصل شو. (وَالتَّدْبِيرُ يَعْتَمِدُ الْمِلْكَ) حالانکه تدبیر د ملك اعتماد لري. (بِخِلَافِ النَّسَبِ لِأَنَّهُ يَعْتَمِدُ الْغُرُورَ عَلَى مَا مَرَّ) په خلاف د نسب، چې هغه د دهوکې اعتماد لري.

**تشریح:** او که دوهم شریك مذکوره مکاتبه سره وطی اونکړله. بلکه هغه ئې مدبره کړله. بیا وینځه د بدل کتابت ادا کاوه نه عاجزه شوه. نو تدبیر به باطلیږي. ځکه چې هغه ملك سره نه دې متصل شوې. چه دا د صاحبینو رحمهما الله په نیز ښکاره دې. ځکه چې کوم شریك هغه ام ولد جوړه کړې ده. دې دهغې د عاجز کیدلو نه وړاندې د هغې مالك شو. نو کتابت د مدبره کیدو نه وړاندې فسخ شو. نو تدبیر به صحیح نه وي. اود امام ابوحنیفه رحمه الله په ... د وینځې د عجز نه دا خبره ښکاره شوه. چه رومبئ واطی د دوهم شریك د برخې (حصې) ... دې وو. کله چې هغه وطی کړې وه. نود دوهم شریك مدبر کول د غیر ملك سره متصل ... ول هغه وخت صحیح کیږي. کله چې خپل ملکیت وي. که خپل ملکیت نه وي. نو مدبره



کول نه صحیح کیږي. پاتې شو نسب، نو هغه د ملك نه بغیر هم صحیح کیږي. یعنی که دهوکه واقع شي. نود دهوکې په اعتماد باندې نسب ثابتیږي.

قَالَ (وَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ) او وینځه به د رومبی مدعی ام ولد وي. (لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نَصِيبَ شَرِيكِهِ) ځکه چې هغه د خپل شریك د برخې (حصې) مالك شو. (وَكَمُلَ الِاسْتِيلَادُ عَلَى مَا بَيَّنَّا) او استیلاد پوره شو. (وَيَضْمَنُ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ عُقْرِهَا) (لِوَطْئِهِ جَارِيَةً مُشْتَرَكَةً) او ضامن به وي د خپل شریك دپاره. د هغې د نصف عقر (مهر). مشترك وینځې سره دده د وطی کاوه په وجه. (وَنِصْفَ قِيمَتِهَا) او د هغې د نصف قیمت. (لِأَنَّهُ تَمَلَّكَ نِصْفَهَا بِالِاسْتِيلَادِ) ځکه چې دې د نصف وینځې مالك شو. په ذریعه د استیلاد، (وَهُوَ تَمَلُّكٌ بِالْقِيمَةِ) او دا مالك کیدل قیمت سره کیږي.

**تشریح:** اوس به مذکوره وینځه (کومه چې دوهم شریك د رومبی شریك د استیلاد نه روسته مدبره کړې ده هغه به) د رومبی شریك ام ولد وي. ځکه چې هغه د خپل شریك د برخې (حصې) مالك شو. او استیلاد پوره شو. او هغه به د دوهم شریك لپاره د وینځې د نصف قیمت اود نصف مهر ضامن وي. د نصف قیمت به ځکه ضامن وي. چه هغه د استیلاد په ذریعه د نصف وینځې مالك شوې دې. او نصف مهر ځکه دې. چه هغه مشترك وینځې سره وطی کړې ده.

(وَالْوَلَدُ وَلَدُ الْأَوَّلِ) او بچې د رومبی مدعی بچې دې. (لِأَنَّهُ صَحَّتْ دَعْوَتُهُ لِقِيَامِ الْمُصَحِّحِ) ځکه چې دده د نسب دعوه صحیح شوه. د مصحح د قیام په وجه. (وَهَذَا قَوْلُهُمْ جَمِيعًا، وَوَجْهُهُ مَا بَيَّنَّا) او دا ددوی ټولو قول دې. ددې وجه هغه ده. کومه چې موږ بیان کړې ده.

**تشریح:** او کوم بچې چې پیدا شوې دې. هغه به د رومبی واطی بچې ګرځولې شي. ځکه چې هغه د نسب دعوه صحیح شوه. په دې معنی چې د نسب د دعوې صحیح کیدلو سبب موجود دې. او هغه په مکاتبه کې ملك کیدل دی. ځکه چې د هغه استیلاد د کتابت د قیام په وخت شوې دې. اود مکاتبه استیلاد بالاجماع صحیح دې. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي. چه مذکوره حکم بالاجماع د ټولو قول دې. ځکه چې د امام ابوحنیفه او د صاحبینو رحمهم الله په منځ کې اختلاف د کتابت د بقاء په صورت کې دې. او دلته کې د سره کتابت پاته نه دې پاتې شوې.

### د مشترك وینځې د مکاتبه کولو حکم

قَالَ (وَإِنْ كَانَا كَاتَبَاهَا) او که دواړو دا مکاتبه کړله. (ثُمَّ أَعْتَقَهَا أَحَدُهُمَا وَهُوَ مُوسِرٌ) بیا یوکس آزاده کړله. په داسې حالت کې چې توانګر دې. (ثُمَّ عَجَزَتْ) بیا وینځه عاجزه شوه. (يَضْمَنُ الْمُعْتِقُ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ قِيمَتِهَا) نو آزادونکې به د خپل شریکوال لپاره ددې د نصف قیمت ضامن وي. (وَيَرْجِعُ بِذَلِكَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1]) او دا به د وینځې نه اخلي. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز.

**تشریح:** او که دواړو شریکانو وینځه مکاتبه کړله. بیا یو (شریکوال) دا آزاده کړله. او آزادونکې توانګر دې. بیا وینځه د بدل کتابت نه عاجزه شوه. نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به آزادونکې خپل شریك ته د وینځې نصف قیمت ورکوي. اود وینځې څخه به ئې وصول کوي. صاحبین رحمهما الله فرمائي. چه هغه ئې د وینځې نه واپس نشي اخستلې. ځکه چې هرکله هغه د عاجز کیدلو په وجه آزاده کړې شوه. نو ګویا هغه برابره (د مخکې) نه آزاده وه. او مشترك وینځې ته د یو شریك د آزادولو په صورت کې د رجوع او عدم رجوع په اره کې اختلاف دې. که یو شریك ئې آزاد کړي. او ساکت شریك دده نه ضمان واخلي. نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به

[1] القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ملتقى الأبحر (٢٣\٤) والدرالمختار (٧٧\٥) وكنز الدقائق (٣٢٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٤٥)_

ازادونكي ددي غلام نه واپس اخلي.

وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي (لَا يَرْجِعُ عَلَيْهَا) چي ددي څخه به نه اخلي. لِأَنَّهَا لَمَّا عَجَزَتْ څكه چي هركله دا عاجزه شوه. وَرُدَّتْ فِي الرِّقِّ تَصِيرُ كَأَنَّهَا لَمْ تَزَلْ قِنَّةً او وينځه كړې شوه. نو ګويا پيوسته وينځه وه. وَالْجَوَابُ فِيهِ عَلَى الْخِلَافِ فِي الرُّجُوعِ وَفِي الْخِيَارَاتِ وَغَيْرِهَا او ځواب په دې كي هغه اختلاف باندې مبني دې. كوم چي په رجوع كاوه او اختيارات وغيره كي دې. كَمَا هُوَ مَسْأَلَةُ تَجَزُّؤِ الْإِعْتَاقِ لكه څنګه چي هغه د اعتاق (آزادۍ) د تجزئ مسئله ده. وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي الْإِعْتَاقِ، كومه چي مونږ اعتاق كي بيان كړې ده.

تشريح: د صاحبينو رحمهما الله په نيز نې هغه د غلام نه واپس نشي اخستلې. او دغه ډول د خيارات ثلاثه اړه كي هم اختلاف دې. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ساكت شريك ته دري اختيارات دی. كه غواړي. خپله برخه دې آزاده كړي. كه غواړي. غلام باندې دې مزدوري اوكړي. كه غواړي. د آزادونكي نه دې تاوان واخلي. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز كه معتق خوشحال وی. نو ساكت شريك به دده نه صرف تاوان اخلي. او كه هغه غريب وی. نو صرف غلام باندې به سعايت (مزدوري) كوی. دغه ډول د ولاء په اړه كي اختلاف دې. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كه ساكت شريك خپله برخه آزاده كړله. يا نې غلام باندې مزدوري اوكړله. نو دده ولاء به دواړو شريكانو كي مشترك وی. او كه هغه د معتق نه تاوان واخستلو. نو لاء به د آزادونكي لپاره وی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز ولاء په هرصورت كي آزادونكي لپاره وی. بهرحال امور ثلاثه (رجوع، خيارات، ولاء) كي مذكوره اختلاف د اعتاق په متجزى كيدلو او نه كيدلو اختلاف باندې مبني دې. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز عتق چونكه تجزى قبلوی. په دې وجه زيربحث مسئله كي نصف برخه آزادول صحيح شو. او ددې په وجه د وينځې په عاجز كيدو د دوهم شريك په برخه كي هيڅ فساد نه راځي. خو كله چي هغه عاجزه شوه. نو اوس دده په برخه كي فساد ښكاره شو. او په داسې صورت كي د دوهم شريك لپاره درې اختياراته دی. كله چي هغه توانګر وی. ① يو دا چي خپله برخه آزاده كړي. ② دويمه دا چي مملوك باندې مزدوري اوكړي. ③ دريمه داچه آزادونكي نه تاوان واخلي. او هغه تاوان اخستل اختيار كړی دی. نو آزادونكې دې تاوان وركړي. اود وينځې نه دې وصول كړي.

فَأَمَّا قَبْلَ الْعَجْزِ باتې شو د عاجز كيدو نه وړاندې لَيْسَ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو ړومبي شريك ته اختيار نشته. چه هغه د آزادونكي نه تاوان واخلي. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ لَمَّا كَانَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ څكه چي هركله د هغوی په نيز اعتاق متجزى دې. كَانَ أَثَرُهُ أَنْ يَجْعَلَ نَصِيبَ غَيْرِ الْمُعْتِقِ كَالْمُكَاتَبِ نو ددې اثر هم دادې. چه دغير معتق برخه د مكاتب پشان شي. فَلَا يَتَغَيَّرُ بِهِ نَصِيبُ صَاحِبِهِ نو په دې سره د دوهم برخه بدله نشوه. لِأَنَّهَا مُكَاتَبَةٌ قَبْلَ ذَلِكَ څكه چي هغه ددې نه وړاندې مكاتبه ده. وَعِنْدَهُمَا لَمَّا كَانَ لَا يَتَجَزَّأُ يُعْتَقُ الْكُلُّ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق متجزى نه دې. نو كل به آزادېږي. فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ مُكَاتَبًا إِنْ كَانَ مُوسِرًا نو هغه د خپلې برخې (حصې) قيمت ضامن جوړولې شي. د مكاتب كيدو په حساب سره. كه هغه توانګر وی. وَيَسْتَسْعِي الْعَبْدَ إِنْ كَانَ مُعْسِرًا او په غلام باندې سعايت (مزدوري) كولې شي. كه غريب وی. لِأَنَّهُ ضَمَانُ إِعْتَاقٍ څكه چي دا ضمان اعتاق (د آزادۍ تاوان) دې. فَيَخْتَلِفُ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ نو په مالدارۍ او غريبۍ سره به مختلف كيږي.

تشريح: مذكوره تفصيل د وينځې د عاجز كيدلو نه روسته سره متعلق دې. پاتې شو د هغې د عاجز كيدو نه د وړاندې حكم، نو د هغې د عاجزكيدو نه وړاندې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز شريك ته دا اختيار نشته. چه هغه د آزادونكي نه تاوان واخلي. څكه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هركله اعتاق متجزى دې. يعني ددې تكړې كيداې شي. نو د آزادولو اثر هم دادې. چه د دوهم شريك برخه د مكاتب پشان شي. او هغه چونكه مكاتب موجود دې. نو د هغه په فعل سره د دوهم برخې (حصې) ته هيڅ ضرر نه رسيږي. څكه چي هغه ددې نه



وړاندې مكاتبه ده. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز چونكه اعتاق متجزى نه دې. نو ددې په آزادولو سره به كل آزاديږي. نو هغه ته اختيار دې. چه د خپلې برخې (حصې) قيمت په حساب د مكاتب كاوه تاوان واخلي. په دې شرط چي آزادونكې توانګر وی. كه غريب وی. نو مملوك به ددې قيمت لپاره مزدوري كوی. څكه چي دا ضمان د اعتاق دې. نو په مالدارۍ او غريبۍ سره به مختلف كيږي.

## په مشترك غلام كښې د خپلې حصې مدبر كولو حكم

قَالَ (وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ رَجُلَيْنِ) كه يو غلام په دوې (دوه) سړو كي مشترك وی. دَبَّرَهُ أَحَدُهُمَا چي په دوی كي يو كس دې مدبر كړو. ثُمَّ أَعْتَقَهُ الْآخَرُ بيا دوهم (شريك) آزاد كړو. وَهُوَ مُوسِرٌ او حال داچه چي هغه توانګر دې. فَإِنْ شَاءَ الَّذِي دَبَّرَهُ ضَمَّنَ الْمُعْتِقَ نِصْفَ قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا، نو چا چي هغه مدبر كړو. كه هغه غواړي. د آزادونكي نه دې په حساب د مدبر كيدلو د نصف قيمت تاوان واخلي. وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ، كه غواړي په غلام دې مزدوري اوكړي. وَإِنْ شَاءَ أَعْتَقَ، او كه غواړي. آزاد دې كړي. وَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا او كه يو (شريك) آزاد كړو. ثُمَّ دَبَّرَهُ الْآخَرُ بيا دوهم مدبر كړو. لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ نو مدبر (مدبر كونكي) ته به دا اختيار نه وی. چه د معتق نه تاوان واخلي. وَيَسْتَسْعِي أَوْ يُعْتِقُ، و هغه غلام باندې مزدوري اوكړي. يا نې آزاد كړي. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ) دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

تشريح: يو غلام په دوې (دوه) سړو كي مشترك وو. په دوی كي يو كس خپله برخه مدبر كړله. ددې نه روسته دوهم شريك خپله برخه آزاده كړله. او آزادونكې توانګر دې. نو مدبر كونكي ته دري اختياره دی. كه غواړي. آزادونكي نه دې د مدبر د نصف قيمت تاوان واخلي. څكه چي د معتق په آزادولو سره دده برخه فاسده شوه. او كه غواړي. خپله برخه دې آزاده كړي. او كه غواړي. په غلام دې د خپلې برخې (حصې) لپاره مزدوري اوكړي. او كه په شريكينو كي يو كس وړاندې آزاد كړو. بيا دوهم شريك مدبر كړو. نو اوس به مدبر ته صرف د دوې (دوه) څيزونو اختيار وی. كه غواړي. خپله برخه دې آزاده كړي. او كه غواړي. په غلام دې د خپلې برخې (حصې) مزدوري اوكړي. د معتق (آزادونكي) نه تاوان نشي اخستلې. دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

وَوَجْهُهُ أَنَّ التَّدْبِيرَ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ او ددې وجه داده. چه مدبر كيدل ددوی په نيز متجزى دې. فَتَدْبِيرُ أَحَدِهِمَا يَقْتَصِرُ عَلَى نَصِيبِهِ لَكِنْ يَفْسُدُ بِهِ نَصِيبُ الْآخَرِ نو د يو مدبر كول به هم دهغه برخې (حصې) پورې وی. خو په دې سره به د دوهم برخه نه خرابيږي. فَيَثْبُتُ لَهُ خِيَرَةُ الْإِعْتَاقِ وَالتَّضْمِينِ وَالِاسْتِسْعَاءِ كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ نو ده ته به د آزادولو، تاوان اخستلو، او د مزدورۍ كاوه اختيار وی. لكه څنګه چي د امام صاحب رحمه الله مذهب دې. فَإِذَا أَعْتَقَ نو كله چي ده آزاد كړو. لَمْ يَبْقَ لَهُ خِيَارُ التَّضْمِينِ وَالِاسْتِسْعَاءِ، يا خو هغه ته د تاوان اخستلو، او د مزدورۍ كاوه اختيار پاتې نشو. وَإِعْتَاقُهُ يَقْتَصِرُ عَلَى نَصِيبِهِ او دده آزادول هم دده برخې (حصې) پورې پاتې شو. لِأَنَّهُ يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُ، وَلَكِنْ يَفْسُدُ بِهِ نَصِيبُ شَرِيكِهِ څكه چي د امام صاحب رحمه الله په نيز اعتاق (آزادول) متجزى دی. خو په دې سره دده د شريك برخه خرابيږي. فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ، په دې وجه ده ته اختيار دې. چه د خپلې برخې (حصې) د قيمت تاوان واخلي. وَلَهُ خِيَارُ الْعِتْقِ وَالِاسْتِسْعَاءِ أَيْضًا كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ او هغه ته د آزادولو او مزدورۍ كاوه هم اختيار دې. لكه څنګه چي د امام صاحب رحمه الله مذهب دې. وَيُضَمِّنُهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ مُدَبَّرًا اود خپلې برخې (حصې) د قيمت تاوان به د مدبر كيدلو په حساب سره اخلي. لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ صَادَفَ الْمُدَبَّرَ څكه چي آزادول مدبر سره ملاؤ شوی دی.

تشريح: او وجه داده. چه ددوی په نيز مدبر كول متجزى دی. نود يو شريك مدبر كول به هم دده برخې (حصې) پورې وی. خو په دې مدبر كاوه سره چونكه د بل برخه خرابه شوه. ,, لسد باب النقل على الآخر،، په دې وجه دوهم شريك ته د امام صاحب رحمه الله د مذهب مطابق مذكوره اختيارات ثلاثه حاصليږي. او هركله چي ده خپله برخه

ازاده كړله.نو ده ته به د تاوان او او مزدورئ اختيار نه وي.او دده اعتاق به هم دده برخې (حصې) پورې وي.ځكه چې اعتاق هم ددوى په نيز متجزى دې.خو په دې اعتاق سره چونكه د دوهم شريكوال برخه خرابيږي..لسد باب الإستخدام عليه،، په دې وجه به ده ته اختيار وي.چه د خپلې برخې (حصې) د قيمت تاوان واخلي.او دا اختيار به هم وي.چه آزاد ئې كړي.يا په غلام باندې مزدورى اوكړي.اوس كه هغه تاوان اخلي.نو تاوان به د مدبر كيدلو په حساب سره اخلي.ځكه چې آزادول يو مدبر سره ملاؤ شوى دى.

## د مشترك مدبر غلام د قيمت لګولو مسئله

ثُمَّ قِيلَ:بيا ونيلى شوى دى.قِيمَةُ الْمُدَبَّرِ تُعْرَفُ بِتَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ، چې د مدبر د قيمت اندازه د دوې (دوه) اندازه كونكو په اندازې سره معلوميږي.وَقِيلَ او ونيلى شوى دى.يَجِبُ ثُلُثَا قِيمَتِهِ وَهُوَ قِنٌّ چې صرف د مملوك دوې (دوه) ثلثه قيمت به واجب وي.لِأَنَّ الْمَنَافِعَ أَنْوَاعٌ ثَلَاثَةٌ:ځكه چې منافع په درې قسمه دى.الْبَيْعُ وَأَشْبَاهُهُ،بيع وَالِاسْتِخْدَامُ وَأَمْثَالُهُ،او ددې پشان خدمت اخستل، وَالْإِعْتَاقُ او ددې په مثل آزادول، وَتَوَابِعُهُ،او ددې توابع، وَالْفَائِتُ الْبَيْعُ او دلته كې صرف د بيع فائده ختمه شوه.فَيَسْقُطُ الثُّلُثُ. نو دريمه برخه قيمت ساقط شو.وَإِذَا ضَمَّنَهُ او هركله چې ده تاوان وركړو.لَا يَتَمَلَّكُهُ بِالضَّمَانِ،نو هغه به ددې مالك نه وي.لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الِانْتِقَالَ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ،كَمَا إِذَا غَصَبَ مُدَبَّرًا ځكه چې مدبر د يو ملك نه دوهم ملك ته د منتقل كاوه لائق نه دې.لكه (مثلاً) يو مدبر ئې غصب كړو.فَأَبَقَ. او هغه اوتختيدلو.

تشريح: د زير بحث مسئلې په حكم كې ونيلى شوى وو.چه د يو شريك د آزادولو نه روسته به مدبر كونكي ته درې اختياراته وى.هغې كې يو دادې.كه هغه غواړي.نود آزادونكي نه دې د مدبر نصف قيمت واخلي.اوس به د مدبر د قيمت اندازه څنګه لګولې شي.نو په دې اړه كې مختلف رائې دى.بعضو ونيلى دى.چه د مدبر د قيمت اندازه به په اندازه كونكو سره معلوميږي.بعضو ونيلى دى.چه د خالص مملوك د قيمت څخه به دوې (دوه) ثلثه قيمت واجب وى.ځكه چې منافع په درې قسمه دى.① بيع او دده پشان هغه امور كوم چې د ملك نه په وتلو كې د بيع مشابه وى.لكه هبه، صدقه، ارث، وصيت، چې د بيع پشان دې امورو سره هم ملك رقبه زائل كيږي.② استخدام يعنى خدمت اخستل، يا هغه امور كوم چې په نفع اخستلو كې د استخدام پشان دى.لكه اجاره، اعاره، وطى.③ اعتاق (د عوض نه بغير آزادول) او ددې توابعات، لكه كتابت، استيلاد، مدبركول، اود مال په عوض آزادول، چې د اعتاق پشان ددې امورو انجام هم حريت (آزادول) دې.اوس په مدبر كاوه كې صرف رومبې نوع يعنى د بيع فائده ختمه شوه.چه اوس دې نشي خرخولې.نو دريمه برخه قيمت به ساقطيږي.او دوې (دوه) برخې (حصې) قيمت به واجب وى.بهرحال هركله چې آزادونكي مدبر ته د قيمت تاوان وركړو.نو معتق به د مدبر د برخې (حصې) تاوان ادا كاوه سره ددې نه مالك كيږي.ځكه چې مدبر ددې قابل نه دې.چه هغه د يو ملك نه دوهم ملك اړخ ته منتقل شي.لكه مثلاً كه يوكس مدبر غصب كړو او هغه اوتختيدلو.نو غاصب باندې هم په دې حساب سره تاوان واجبيږي.اګرچه غاصب ددې نه مالك كيږي.نودا ضمان د تملك نه دې.بلكه د مالك او مملوك په منځ كې حائل كيدلو ضمان دې.چه ددې اعتاق په ذريعه د آقا د خدمت اخستلو قبضه وغيره زائل شوه.نو هغه د غاصب په درجه كې شو.

وَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا أَوَّلًا او كه وړاندې يوشريك آزاد كړو.كَانَ لِلْآخَرِ الْخِيَارَاتُ الثَّلَاثُ عِنْدَهُ نو دوهم شريك ته به درې واړه اختيارات وى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، فَإِذَا دَبَّرَهُ بيا كله چې دوهم (شريك) مدبر كړو.لَمْ يَبْقَ لَهُ خِيَارُ التَّضْمِينِ نو هغه ته د تاوان اخستلو اختيار پاتې نشو.وَبَقِيَ خِيَارُ الْإِعْتَاقِ وَالِاسْتِسْعَاءِ او د آزادولو يا مزدورئ كاوه اختيار پاتې شو.لِأَنَّ الْمُدَبَّرَ يُعْتَقُ وَيُسْتَسْعَى ځكه چې مدبر آزادولې شى.او په ده باندې مزدورى كولې شى.



تشريح: مسئله د كتاب د دوهم جزء بيان دې.كه په شريكينو كې يوشريك خپله برخه آزاده كړله.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دوهم شريك ته به ثلاثه امور (اعتاق، تضمين،او استسعاء) حاصل وى.ځكه چې آزادونكى اګرچه خپله برخه كې كمې كړې دې.خود دوهم شريك برخه ئې خرابه كړله بيا كله چې دوهم شريك دې مدبر كړو.نو اوس به مدبر ته صرف د دوې (دوه) څيزونو اختيار وى.كه غواړي.خپله برخه دې آزاده كړي.كه غواړي.په غلام دې مزدورى اوكړي.(د آزادونكي نه تاوان نشي اخستلې).ځكه چې مدبر آزادول، يا په ده باندې مزدورى كول ممكن دى.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ:صاحبين رحمهما الله فرمائي.إِذَا دَبَّرَهُ أَحَدُهُمَا چې هركله يو كس مدبر كړو.فَعِتْقُ الْآخَرِ بَاطِلٌ نو د دوهم (شريك) آزادول باطل دى.لِأَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ عِنْدَهُمَا ځكه چې ددوى په نيز مدبر متجزى نه دې.فَيَتَمَلَّكُ نَصِيبَ صَاحِبِهِ بِالتَّدْبِيرِ نو هغه په مدبر كاوه سره د خپل شريك د برخې (حصې) مالك شو.وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا او دده د نصف قيمت به ضامن وى.كه توانګر وى.او كه غريب وى.لِأَنَّهُ ضَمَانُ تَمَلُّكٍ ځكه چې دا ضمان د تملك دې.فَلَا يَخْتَلِفُ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ،نو په مالدارئ او غريبئ سره به نه مختلف كيږي.وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ قِنًّا او دده د نصف برخې (حصې) د قيمت تاوان به صرف د مملوك كيدلو په حساب سره وركوى.لِأَنَّهُ صَادَفَهُ التَّدْبِيرُ ځكه چې مدبر كول په داسې حال كې متصل شو.وَهُوَ قِنٌّ چې هغه صرف مملوك وو.

تشريح: صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه هركله په دواړه شريكانو كې يو كس خپله برخه مدبر كړله.نود دوهم آزادول باطل دى.ځكه چې ددوى په نيز مدبر كول متجزى نه دې.نو هغه په مدبر كاوه سره د خپل شريكوال د برخې (حصې) مالك شو.او دده د نصف برخې (حصې) د قيمت ضامن شو.كه توانګر وى.اوكه غريب وى.ځكه چې دا ضمان د تملك دې.نو په غريبئ او مالدارئ سره به نه مختلف كيږي.او نصف قيمت به د خالص غلام په حساب سره وركوى.ځكه چې مدبر كول په داسې حالت كې شو.چه هغه خالص مملوك وو.

وَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُهُمَا او كه يو كس هغه آزاد كړو.فَتَدْبِيرُ الْآخَرِ بَاطِلٌ لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ لَا يَتَجَزَّأُ فَعَتَقَ كُلُّهُ فَلَمْ يُصَادِفِ التَّدْبِيرُ الْمِلْكَ وَهُوَ يَعْتَمِدُهُ نو اعتماد په ملك دې.وَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ إِنْ كَانَ مُوسِرًا او دده د نصف قيمت به ضامن وى.كه توانګر وى.وَيَسْعَى الْعَبْدُ فِي ذَلِكَ إِنْ كَانَ مُعْسِرًا او غلام به په نيم قيمت كې مزدورى كوى.كه غريب وى.لِأَنَّ هَذَا ضَمَانُ الْإِعْتَاقِ ځكه چې دا ضمان د اعتاق دې.فَيَخْتَلِفُ ذَلِكَ بِالْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ عِنْدَهُمَا، وَاللَّهُ أَعْلَمُ نودا د صاحبينو رحمهما الله په نيز د مالدارئ او غريبئ په لحاظ سره مختلف كيږي.

تشريح: اود يو كس د آزادولو نه روسته د دوهم مدبر كول هم باطل دى.ځكه چې ددوى په نيز اعتاق هم نا قابل تجزى دې.نو پوره غلام به آزاد وى.نو مدبر كول ملك سره متصل نشو.حالانكه د مدبر كاوه د صحت لپاره د ملك قيام ضرورى دې.اوس به معتق دده د نصف قيمت ضامن وى.په دې شرط چې هغه توانګر وى.ګني غلام به مزدورى كوى.ځكه چې دا ضمان د اعتاق دې.چه دا د صاحبينو رحمهما الله په نيز د غريبئ او خوشحالئ په لحاظ سره مختلف كيږي.

## بَابُ مَوْتِ الْمُكَاتَبِ وَعَجْزِهِ وَمَوْتِ الْمَوْلَى)

ژباړه: (دا) باب د مكاتب د مرګ او دده دعاجز كيدلو اود آقا د مرګ (په بيان كې) دې.

تشريح: مرګ د مكاتب، عجز د مكاتب، اود آقا د مرګ د مؤخر كاوه د مناسبت وجه بالكل واضح ده.ځكه چې دا امور د عقد كتابت نه مؤخر دى.نو هم دغه ډول به ددې د احكامو بيان هم مؤخر وى.

### د مكاتب د عاجز كيدلو په صورت كښې د مودې او مهلت بيان

قَالَ وَإِذَا عَجَزَ الْمُكَاتَبُ عَنْ نَجْمٍ كله چې مكاتب د يو قسط نه عاجزه شى.نَظَرَ الْحَاكِمُ فِي حَالِهِ،نو حاكم دې

غور اوکړی.دده په حالت کي. ﴿فَإِنْ كَانَ لَهُ دَيْنٌ يَقْبِضُهُ﴾ نو که د هغه څه قرضه وی.چه هغه وصول کړی. ﴿أَوْ مَالٌ يَقْدَمُ عَلَيْهِ﴾ یا څه مال وی.چه هغه ده ته ملاؤ شی. ﴿لَمْ يُعَجِّلْ بِتَعْجِيزِهِ﴾ نو دده په عاجز کاوه کي دي جلتی نه کوی. ﴿وَانْتَظَرَ عَلَيْهِ الْيَوْمَيْنِ أَوِ الثَّلَاثَةَ﴾ بلکه دوې (دوه) درې ورځي دي انتظار اوکړی. ﴿نَظَرًا لِلْجَانِبَيْنِ﴾،د جانبینو د رعایت په نظر سره. ﴿وَالثَّلَاثُ هِيَ الْمُدَّةُ الَّتِي ضُرِبَتْ لِإِبْلَاءِ الْأَعْذَارِ كَإِمْهَالِ الْخَصْمِ لِلدَّفْعِ وَالْمَدْيُونِ لِلْقَضَاءِ﴾ او د دریو ورځو موده داسي ده.چه دا د عذرونو ښکاره کیدلو لپاره مقرر کړی شوې ده.لکه مدعی علیه ته د دفعیه (د دعوه لرې کولو) دپاره، او قرضدار ته د پور ادا کاوه لپاره مهلت ورکول. ﴿فَلَا يُزَادُ عَلَيْهِ﴾ نو ددې څخه به زیات مهلت نشی ورکولي.

**تشریح:** یوسړی خپل غلام په قسطونو سره په بدل کتابت ادا کاوه باندې مکاتب کړو.هغه د یو قسط ادا کاوه نه عاجزه شو.نو که هغه ته د یو ځائي نه د مال ملاویدو امید وی.نو حاکم به دهغه د عجز فیصله نه ورکوی.بلکه دوې (دوه) درې ورځي دي انتظار اوکړی.چه په دې کي د آقا اومکاتب د دواړو رعایت دې.او د دریو ورځو موده یوه داسې موده ده.چه دا د عذرونو ښکاره کاوه لپاره مقرر کړې شوې ده.چه د مدعی علیه د دعوې لرې کاوه لپاره او قرضدار ته د پور ادا کاوه لپاره درې ورځي موده ورکولې شی.او د خیار موده هم شرعاً درې ورځي ده.نو ددې څخه به زیات مهلت نشی ورکولې.او اصل په دې باب کي د حضرت موسی او خضر علیهما السلام قصه ده.چه حضرت خضر ﷺ په دریم خلی فرمائیلی وو. ﴿هَٰذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ﴾

## د مهلت په موده کښې اداکولو نه د مکاتب د عاجز کیدلو حکم

﴿فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَجْهٌ﴾ او که دده لپاره د مال هیڅ لاره نه وی. ﴿وَطَلَبَ الْمَوْلَى تَعْجِيزَهُ﴾ و آقا دده د عاجز کاوه درخواست اوکړی. ﴿عَجَّزَهُ﴾ نو حاکم به دې عاجز اوګرځوی. ﴿وَفَسَخَ الْكِتَابَةَ﴾، و کتابت به فسخ کړی. ﴿وَهَٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ﴾() دا د طرفینو ﷺ په نیز دی. ﴿وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ﴾: امام ابویوسف ﷺ فرمائی. ﴿لَا يُعَجِّزُهُ حَتَّى يَتَوَالَى عَلَيْهِ نَجْمَانِ﴾) چې دې به عاجز نه ګرځوی.تردې چې په ده باندې بلا ناغه دوې (دوه) قسطونه را واوړی. ﴿لِقَوْلِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ﴾: د حضرت علی ﷺ د قول په وجه. ﴿إِذَا تَوَالَى عَلَى الْمُكَاتَبِ نَجْمَانِ﴾ چې کله په مکاتب باندې بلا ناغه دوې (دوه) قسطونه را واوړی. ﴿رُدَّ فِي الرِّقِّ﴾([2]) نو په غلامۍ کي به واپس کولې شی. ﴿عَلَّقَهُ بِهَٰذَا الشَّرْطِ﴾، نو دوی ﷺ دې شرط سره معلق کړو.

**حل اللغة:** **تعجیز:** عجز اړخ ته منسوب کول، **یتوالی:** بلا ناغه کیدل، **نجمان:** د نجم تثنیه ده.په معنی د قسط سره، **ارفاق:** د مهربانۍ سلوك كول، **امهال:** مهلت ورکول، **استیسار:** آسانتیا غوښتل، **مدد:** د مدة جمع ده.مودې ته وئیلې شی.

**تشریح:** که مکاتب لپاره د مال حاصلولو هیڅ لاره نه وی.او هغه د درې ورځو نه روسته هم ادا نکړی.او آقا درخواست اوکړی.چه دې عاجز اوګرځولې شي.نو قاضی به دده د عجز حکم اوکړی.او کتابت به فسخ کړی.دا د طرفینو ﷺ په نیز دی.امام ابویوسف ﷺ فرمائی.چه کومه پورې په ده باندې بلا ناغه دوې (دوه) قسطونه راواؤ نړی.هغه وخته پورې به عجز حکم نه کوی.امام احمد، ابن ابی لیلی ، سفیان بن عیینه، حسن بن حی ﷺ هم ددې قائل دی.

دلیل د حضرت علی ﷺ ارشاد دې.چه د ابن ابی شیبه په مصنف کي ، بیهقی په سنن کي روایت کړې دې.

(1) القول الراجح هو قول الطرفین ﷺ كذا فی الدرالمنتقی (٢٤\١٤) والهندیة (١٧\٥) وردالمحتار(٧٧\٥) ومجمع الأنهر(٢٤\١٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٦\٢)_

(2) أخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه فی كتاب البیوع)_



﴿فإذا تتابع على المكاتب نجمان فلم يؤد نجومه رد في الرق﴾،، چې کله مکاتب باندې دوې (دوه) قسطونه راواوړی. او هغه ئې ادا نکړې شی.نو غلامۍ اړخ ته به ګرځولې شی.نو حضرت علی ﷺ تعجیز دې شرط سره معلق کړې دې.او کوم چې معلق بالشروط وی.هغه د شرط نه وړاندې معدوم کیږی. ﴿وهذا لا يعرف قياساً فصار المروى عنه كالمروى عنه ﷺ﴾

﴿وَلِأَنَّهُ عَقْدُ إِرْفَاقٍ﴾ ځکه چې عقد کتابت د آسانتیا عقد دې. ﴿حَتَّى كَانَ أَحْسَنُهُ مُؤَجَّلَةً﴾ تردې چې ددې اعلی هغه وی.کوم چې نیتیه دار وی. ﴿وَحَالَةُ الْوُجُوبِ بَعْدَ حُلُولِ نَجْمٍ﴾ او د دوجوب حالت د قسط موده راتلو باندې کیږی. ﴿فَلَا بُدَّ مِنْ إِمْهَالِ مُدَّةٍ اسْتِيسَارًا﴾،نو یوې اندازې پورې مهلت ورکول ضروری دی.د آسانتیا ور کاوه دپاره. ﴿وَأَوْلَى الْمُدَدِ مَا تَوَافَقَ عَلَيْهِ الْعَاقِدَانِ﴾. او په مودو کي بهتره موده هغه ده.په کومه چې دواړو عقد کونکو اتفاق کړې وی.

**تشریح:** دا د امام ابویوسف ﷺ عقلی دلیل دې.چه عقد کتابت خو عقد ارفاق (د نرمۍ عقد) دې.چه دا په سهولت او آسانتیا باندې مبنی دې.تردې چې اعلی ترین عقد کتابت هغه وی.کوم چې میعادی (نیتیه دار) وی.بلکه د امام شافعی او امام احمد ﷺ په نیز میعادی کیدل لازمی دی.اود ادا کاوه وجوب د قسط مودې په راتلو باندې کیږی.نو د آسانتیا په لحاظ څه اندازه مودې پورې مهلت ورکول ضروری دی.او بنه موده هغه ده.په کوم چې دواړو عاقدینو اتفاق کړې دې.او هغه د یو قسط موده ده.

﴿وَلَهُمَا﴾ د طرفینو ﷺ دلیل دادې. ﴿أَنَّ سَبَبَ الْفَسْخِ قَدْ تَحَقَّقَ وَهُوَ الْعَجْزُ﴾، چې د فسخ سبب یعنی عاجز کیدل متحقق شو. ﴿لِأَنَّ مَنْ عَجَزَ عَنْ أَدَاءِ نَجْمٍ وَاحِدٍ يَكُونُ أَعْجَزَ عَنْ أَدَاءِ نَجْمَيْنِ﴾،ځکه چې کوم (غلام) د یو قسط ادا کاوه نه عاجز وی.هغه به د دوې (دوه) قسطونو ادا کاوه نه خامخا عاجز وی. ﴿وَهَٰذَا لِأَنَّ مَقْصُودَ الْمَوْلَى الْوُصُولُ إِلَى الْمَالِ عِنْدَ حُلُولِ نَجْمٍ﴾ او ددې وجه داده.چه د آقا مقصد مال پورې رسیدل وو.د قسط وخت راتګ و باندې. ﴿وَقَدْ فَاتَ﴾ او دا مقصد فوت شو. ﴿فَيُفْسَخُ إِذَا لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِدُونِهِ﴾،نو عقد به فسخ کولې شی.کله چې هغه ددې نه بغیر راضی نه وو. ﴿بِخِلَافِ الْيَوْمَيْنِ وَالثَّلَاثَةِ لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْهَا لِإِمْكَانِ الْأَدَاءِ﴾ په خلاف د دوې (دوه) درې ورځو، چې دا ضروری ده.د ادا کاوه ممکن کاوه دپاره. ﴿فَلَمْ يَكُنْ تَأْخِيرًا﴾، نودا هیڅ لیټ کول نه دی.

**تشریح:** د طرفینو ﷺ دلیل دادې.چه سبب د فسخ یعنی د مکاتب عاجز کیدل متحقق شو.ځکه چې هرکله هغه د یوقسط ادا کاوه نه عاجز دې.نو د دوې (دوه) قسطونو ادا کاوه څخه به خامخا زیات عاجز وی.په خلاف د دوې (دوه) درې ورځو، چې دومره مهلت ضروری دې.او د عجز سبب فسخ کیدل ځکه دې.چه د آقا مقصد دا وو.چه د قسط وخت په راتلو باندې مال وصول شو.او دا مقصد فوت شو.نو هرکله چې آقا ددې نه بغیر راضی نه وو.نو عقد به فسخ کولې شی.

﴿وَالْآثَارُ مُتَعَارِضَةٌ﴾،اود صحابو ﷺ آثار خپل منځ کي متعارض دی. ﴿فَإِنَّ الْمَرْوِيَّ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا﴾ کله د حضرت ابن عمر ﷺ نه نقل دی. ﴿أَنَّ مُكَاتَبَةً لَهُ عَجَزَتْ عَنْ أَدَاءِ نَجْمٍ وَاحِدٍ فَرَدَّهَا﴾([1])چه ددوی یوه مکاتبه وینځه د یو قسط نه عاجزه شوه.نو هغه ئې رقیق (وینځه) کړله. ﴿فَسَقَطَ الِاحْتِجَاجُ بِهَا﴾ نو ددې آثارو نه دلیل اخستل ساقط شو.

**تشریح:** امام ابویوسف ﷺ چې د حضرت علی ﷺ د مذکوره اثر نه کوم استدلال کړې دې.د هغې ځواب دا دې.چه په دې اړه کي د صحابه کرامو ﷺ آثار خپل منځ کي متعارض دی.لکه د حضرت ابن عمر ﷺ روایت

(1) قال الزیلعی ﷺ قلت غریب وروی ابن أبی شیبة فی مصنفه ...عن عطاء أن ابن عمر كاتب غلاماً له على ألف دینار فأداها إلا مائة فرده فی الرق (نصب الرأیة،١٤\٣٦٠)_

دي.چه ددوی یوه مکاتبه وینځه د یو قسط ادا کاوه نه عاجزه شوه.نو کتابت ئې فسخ کړو.او هغه ئې دوباره وینځه کړله.نو ددې آثار نه دلیل نیول ساقط شو.خو د ابن عمر ؓ په اثر کې د یو قسط قید نشته .بلکه ابن ابی شیبه ؒ د حضرت عطاء نه روایت کړې دې. «أن ابن عمر ؓ كاتب غلاماً له على ألف دينار فاداها إلا مائة فرده في الرق»، چه حضرت ابن عمر ؓ خپل یو غلام په زر دیناره مکاتب کړو.غلام نهه سوه دیناره ادا کړل.او سل دینار ئې ادا نکړې شو.نو حضرت ابن عمر ؓ هغه دوباره غلام کړو.نو ښکاره شوه.چه هغه د سل دیناره ادا کاوه نه عاجز شوې وو.یا پیوسته د دوې (دوه) قسطونو موده تیره شوې وه.بهرحال رومبې نودا د حضرت ابن عمر ؓ فعل دې.او په اثر د علی ؓ کې قول دې. دوهم دا چې دواړو کې هیڅ معارضه نشته.نو ښکاره قول د امام ابویوسف ؒ دې.

## خپل منځ کښې رضامندئ سره د عذر نه بغیر د کتابت فسخ کولو حکم

قَالَ ﴿فَإِنْ أَخَلَّ بِنَجْمٍ عِنْدَ غَيْرِ السُّلْطَانِ﴾ که په یو قسط کې ئې خلل ښکاره کړو.د غیر سلطان په وړاندې، ﴿فَعَجَزَ﴾ او عاجزه شو. ﴿فَرَدَّهُ مَوْلَاهُ بِرِضَاهُ فَهُوَ جَائِزٌ﴾ نو آقا دهغه په رضامندئ هغه (واپس) غلام کړو.نو دا جائز دی. ﴿لِأَنَّ الْكِتَابَةَ تُفْسَخُ بِالتَّرَاضِي مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ﴾ ځکه چې کتابت خپل منځ کې رضامندئ سره د عذر نه بغیر هم فسخ کولې شی. ﴿فَبِالْعُذْرِ أَوْلَى﴾ نو د عذر په وجه په درجه اولی فسخ کیدای شی.

**تشریح:** اخل د مرکزه خنې دې.په معنی د مرکز پرېښولو ،او اخل بالشئ په معنی د کوتاهئ (او کمی کولو) دې.دلته کې ددې نه مراد دادې.چه د بدل کتابت ادا کاوه لپاره د کوم وخت په تعین باندې دوی دواړه متفق شوی وو.په دغه معین وخت کې قسط اداکول پرېږدی.د سلطان نه مراد قاضی دې.ځکه چې قاضی باندې د سلطان اطلاق کیږی.بلکه ددې اطلاق په هر داسې کس باندې کیږی.چه هغه صاحب حکم وی.تردې چې هرسړې پخپل کور کې سلطان دې.

ؒ د قول مطلب دادې.که مکاتب د قاضی نه علاوه د بل چا په وړاندې د قسط په ادا کاوه کې بې غوری ښکاره کړله.او هغه ددې د ادا کاوه نه عاجز شو.نو آقا د هغه په رضامندئ باندې هغه غلام کړو.نو دا جائز ده.ځکه کتابت یو داسې عقد دې.که هیڅ عذر نه وی.بیا هم خپل منځ کې رضامندئ سره فسخ کیږی.نود عذر په وجه به په درجه اولی فسخ کیږی.

﴿وَلَوْ لَمْ يَرْضَ بِهِ الْعَبْدُ﴾ او که غلام په فسخ باندې راضی نه وی. ﴿لَا بُدَّ مِنَ الْقَضَاءِ بِالْفَسْخِ﴾ نود فسخ لپاره د قاضی فیصله ضروری ده. ﴿لِأَنَّهُ عَقْدٌ لَازِمٌ تَامٌّ﴾ ځکه چې عقد کتابت یو لازم او مکمل عقد دې. ﴿فَلَا بُدَّ مِنَ الْقَضَاءِ أَوِ الرِّضَا كَالرَّدِّ بِالْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ﴾ فَالَ په دې وجه قضاء یا رضاء ضروری ده.لکه د قبضې نه روسته چې د عیب په وجه واپسئ کې کیږی. ﴿وَإِذَا عَجَزَ الْمُكَاتَبُ﴾ کله چې مکاتب عاجز شو. ﴿عَادَ إِلَى أَحْكَامِ الرِّقِّ﴾ ﴿لِانْفِسَاخِ الْكِتَابَةِ﴾ نو هغه به دغلامئ احکامو اړخ ته واپس کیږی.د کتابت د فسخ کاوه په وجه. ﴿وَمَا كَانَ فِي يَدِهِ مِنَ الْأَكْسَابِ فَهُوَ لِمَوْلَاهُ﴾ او کومې مزدورئ (ګټې) چې دده په قبضه کې وی.هغه به دده د آقا وی. ﴿لِأَنَّهُ ظَهَرَ أَنَّهُ كَسْبُ عَبْدِهِ﴾ ځکه دا خبره ښکاره شوه.چه دا دده د غلام مزدوری ده. ﴿وَهَذَا لِأَنَّهُ كَانَ مَوْقُوفًا عَلَيْهِ أَوْ عَلَى مَوْلَاهُ﴾ او دا ځکه دی.چه مزدوری موقوف وه مکاتب باندې ،یا دده په آقا باندې، ﴿وَقَدْ زَالَ التَّوَقُّفُ﴾ او اوس دا توقف ختم شو.

**تشریح:** او که مذکوره غلام په فسخ د کتابت باندې راضی نه وی.نو د فسخ لپاره د قاضی فیصله ضروری ده.ځکه چې کتابت د آقا د اړخه یو لازمی عقد دې.چه د هغې په ماتولو کې هغه اختیار مند نه دې.او بله دا چې هغه تام او کامل هم دې.په دې معنی چې په دې کې خیار شرط نه دې.او د هر یو داسې عقد ماتولو لپاره د قاضی د فیصلې یا خپل منځ کې رضامندی ضروری وی.لکه که مشتری د قبضې نه روسته مبیع کې عیب بیامومی.نو هغه د بیع په فسخ کاوه کې پخپله مستقل نه وی.

## د مکاتب په مرګ سره دده دمال او کتابت حکم



قَالَ ﴿فَإِنْ مَاتَ الْمُكَاتَبُ﴾ که مکاتب مړ شو ﴿وَلَهُ مَالٌ﴾ او حال دا چه د هغه څه مال شته ﴿لَمْ تَنْفَسِخِ الْكِتَابَةُ﴾ نو کتابت به نه فسخ کیږی. ﴿وَقُضِيَ مَا عَلَيْهِ مِنْ مَالِهِ﴾ او خلاصولې به شی.هغه (دیون) کوم چې دده په ذمه دی.د هغه د مال نه. ﴿وَحُكِمَ بِعِتْقِهِ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ﴾ او حکم به ورکولې شی.د هغه د آزادئ، د هغه د ژوند په آخری برخه کې. ﴿وَمَا بَقِيَ فَهُوَ مِيرَاثٌ لِوَرَثَتِهِ﴾ او کوم څه چې پاته پاتې شی.هغه به د هغه د وارثانو میراث وی. ﴿وَيُعْتَقُ أَوْلَادُهُ﴾ او د هغه اولاد به آزاد وی. ﴿وَهَذَا قَوْلُ عَلِيٍّ وَابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا﴾ (١) دا د حضرت علی او ابن مسعود ؓ قول دې. ﴿وَبِهِ أَخَذَ عُلَمَاؤُنَا رَحِمَهُمُ اللَّهُ﴾ او هم دا زمونږ عالمانو اختیار کړې دې.

**تشریح:** که مکاتب د بدل کتابت ادا کاوه نه وړاندې دومره ترکه (مال میراث) پرېږدی.او مړشی.چه هغې سره بدل کتابت ادا کیدای شی.نو زمونږ په نیز به عقد کتابت نه فسخ کیږی.بلکه دده په ترکه کې به دده بدل کتابت اداکولې شی.اود ژوند په آخر کې به دده د آزادئ حکم ورکولې شی.او په ترکه کې چې کوم مال پاته پاتې شی.هغه به د هغه وارثانو ته ملاویږی.د حضرت عطاء، طاؤس، حسن بصری ، حسن بن حی ، مسید، ابن سیرین، نخعی ، شعبی ، عمرو بن دینار، ثور، ابن راهویه د ټولو هم دا قول دې.اود حضرت علی او ابن مسعود ؓ قول هم دادې.لکه چې حافظ بیهقی په سنن کې د امام شعبی ؒ نه روایت کړې دې. «قال كان زيد بن ثابت ؓ يقول المكاتب عبد مابقي عليه درهم لا يرث و لا يورث و كان علي ؓ يقول إذا مات المكاتب و ترك مالاً قسم ما ترك على ما أدى وعلى ما بقي فما أصاب ما أدى فللورثة و ما أصاب ما بقي فلمواليه و كان عبدالله ؓ يقول يؤدى إلى مواليه ما بقي من مكاتبه و لورثة ما بقي»، حضرت زید بن ثابت ؓ فرمائی.چه مکاتب به غلام وی.ترکومه پورې چې په ده یو درهم هم پاته پاتې وی.نه به هغه د چا وارث وی.او نه به دده څوك وارث وی.حضرت علی ؓ فرمائی.چه کله مکاتب مړ شو.او هغه څه مال پرېښولو .نو دده ترکه به په هغه باندې تقسیمولې شی.کوم چې ده آدا کړې ده.او کومه چې پاته ده.نو کومه چې ادا شوی ته اورسیږی.هغه به د وراثانو وی.او کومه چې پاته ته اورسیږی.هغه به دده د موالی لپاره وی.حضرت عبدالله بن مسعود ؓ به فرمائیل.چه د مکاتب نه کوم پاته وی.هغه به دده موالی ته ادا کولې شی.او کومه چې پاته پاتې شی.هغه دده د وارثانو لپاره ده.

ؒ په مصنف د عبدالرزاق کې په اخبار د سفیان ثوری ؒ په واسطهٔ د ،،سماك بن حرب عن قابوس بن مخارق،، نقل دی . «أن محمد بن أبي بكر كتب إلى علي ؓ يسأله عن مسلمين تزندقا و عن مسلم زنا بنصرانية و عن مكاتب مات و تركه بقية من كتابته و أولاداً أحراراً فكتب إليه علي أما اللذين تزندقا فإن تابا و إلا فاضرب أعناقهما و أما المسلم فأقم عليه الحد و دافع النصرانية إلى أهل دينها و أما المكاتب فيؤدى بقية كتابته و ما بقي فلوارثه الأحرار» ،، حضرت علی ؓ د حضرت محمد بن ابی بکر ؓ د دریو واړو سوالونو په ځواب کې اولیکل.چه هغوی دواړه زندیق شو.که توبه اوباسی.نو بهتره ده.کنی ددوی ستهونه اووهه.او په زناکار مسلمان باندې حد د زنا قائم کړه.او نصرانیه زناکاره د هغوی دین والا ته ورکړئ.او د مکاتب د ترکې نه د هغه پاته کتابت ادا کړئ.او کوم چې پاته پاتې شی.هغه د هغه آزاد اولاد لپاره دې.

## د امام شافعی رحمه الله مسلك

﴿وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ﴾ : امام شافعی ؒ فرمائی. ﴿تَبْطُلُ الْكِتَابَةُ﴾ چې کتابت باطلیږی. ﴿وَيَمُوتُ عَبْدًا﴾ او هغه به غلام مړ کیږی. ﴿وَمَا تَرَكَهُ لِمَوْلَاهُ﴾ ،او کوم څه چې هغه پرېښول . هغه به دده د آقا وی. ﴿وَإِمَامُهُ فِي ذَلِكَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رَضِيَ اللَّهُ﴾ په دې اړه کې ددوی پیشوا حضرت زید بن ثابت ؓ دې.

---

(١) قال الزيلعي ؒ أخرج البيهقي عن الشعبي ؒ قال كان زيد بن ثابت ؓ يقول: المكاتب عبد ما بقي عليه درهم لا يرث ولا يورث وكان علي ؓ يقول: إذا مات المكاتب وترك مالاً قسم ما ترك على ما أدى وعلى ما بقي فما أصاب ما أدى فلورثته وما أصاب ما بقي فلمواليه (نصب الراية: ٣٦٠\٤)۔

**تشریح:** امام شافعي رحمه الله فرماني. چه عقد کتابت به فسخ کيږي. او مکاتب به د غلامۍ په حالت کي د دنيا نه رخصتيږي. او دده ترکه به مولا ته ملاويږي. ابو قتاده، سليمان، عمر بن عبد العزيز، او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی.

❓ دليل د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه قول دي. «المكاتب عبد مابقي عليه درهم لا يرث ولا يورث» بيهقي ددې د تخريج نه روسته ونيلي دی. چه د حضرت ابن عمر او عائشه رضي الله عنهما قول هم دادي. او دا يو روايت د حضرت عمر رضي الله عنه نه هم دي.

| |
|---|
| ولان **الْمَقْصُودَ مِنَ الْكِتَابَةِ عِتْقُهُ** او ځکه چي د کتابت نه مقصود د هغه آزادي ده. **وَقَدْ تَعَذَّرَ إِثْبَاتُهُ** او د هغي ثابتول مشکل شو. **فَتَبْطُلُ** نو کتابت به باطل وی. **وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا يَخْلُو** وجه داده. چه آزادي خالي نه ده. **إِمَّا أَنْ يَثْبُتَ بَعْدَ الْمَمَاتِ مَقْصُودًا** يا به د مرګ نه روسته ثابتيږي. چه مقصود به وی. **أَوْ يَثْبُتَ قَبْلَهُ** يا به د مرګ نه وړاندې ثابتيږي. **أَوْ بَعْدَهُ مُسْتَنِدًا** يا به د مرګ نه روسته ثابتيږي. چه مستند به وی ( يو وخت ته) **لَا وَجْهَ إِلَى الْأَوَّلِ لِعَدَمِ الْمَحَلِّيَّةِ** د رومبي هيڅ وجه نشته. د عدم محليت په وجه. **وَلَا إِلَى الثَّانِي لِفَقْدِ الشَّرْطِ وَهُوَ الْأَدَاءُ** او د دوهم هم څه وجه نشته. د شرط يعنی د ادا کاوه د نه موجود کيدلو په وجه. **وَلَا إِلَى الثَّالِثِ لِتَعَذُّرِ الثُّبُوتِ فِي الْحَالِ** او د دريم هم هيڅ وجه نشته. في الحال د ثبوت متعذر کيدلو په وجه. **وَالشَّيْءُ يَثْبُتُ ثُمَّ يَسْتَنِدُ.** حالانکه شي مخکي ثابتيږي. بيا مستند کيږي. |

**تشریح:** دا د امام شافعي رحمه الله عقلي دليل دي. چه د کتابت نه مقصود دا وو. چه مکاتب آزاد شي. او دده د مرګ په وجه د آزادۍ اثبات محال ( او ناممکن) شو. نو کتابت به باطليږي. د عتق د عذر وضاحت دادي. که آزادي ثابته شي. نو د دريو حالو نه خالي نه ده. ① ددې ثبوت صرف د مرګ نه روسته مقصود وی. ( يعنی نه وړاندې ثابت وی. او نه يو وخت اړخ ته مستند وی ). ② د مرګ نه وړاندې ثابت وی. ③ د مرګ نه روسته يو وخت اړخ ته مستند ثابت وی. ( مثلاً دده د مرګ نه روسته دا حکم ورکړې شي. چه هغه د خپل ژوند فلاني وخت نه آزاد شوې دي) حالانکه دا درې واړه صورتونه باطل دی.

① رومبې ځکه چي هغه د مرګ نه روسته د آزادۍ محل پاتې نشو. ( حالانکه عتق لپاره د محل کيدل ضروري دی ) ځکه چي عتق کي د مالکيت د قوت احداث وی. چه دا د مړي په حق کي متصور نه دې. ② دوهم ځکه چي آزادي اداء سره مشروط ده. او مفروض عدم اداء دي. نود مشروط د شرط نه بغير موجود کيدل لازميږي. چه دا جائز نه ده. ③ دريم ځکه چي شي وړاندې ثابتيږي. بيا يو وخت اړخ ته منسوب کيږي. حالانکه دلته د آزادۍ في الحال ثابتيدل متعذر دي. ځکه چي آزادي يو وخت اړخ ته نه مستند شو. هرکله چي درې واړه صورتونه محال شو. نو د مکاتب د آزاديدلو هيڅ لاره پاتې نشوه. نو هغه غلام مړ شو.

| |
|---|
| **وَلَنَا** زمونږ دليل دادي. **أَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ**، چي کتابت عقد معاوضه ده. **وَلَا يَبْطُلُ بِمَوْتِ أَحَدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ وَهُوَ الْمَوْلَى** او احد المتعاقدين يعنی د آقا په مرګ سره نه باطليږي. **فَكَذَا بِمَوْتِ الْآخَرِ** نو هم دغه ډول به د دوهم په مرګ سره هم نه باطليږي. **وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا الْحَاجَةُ إِلَى إِبْقَاءِ الْعَقْدِ لِإِحْيَاءِ الْحَقِّ**، او امر جامع په دې دواړو کي اړتيا دې. د عقد پاته ساتلو د حق ژوندی کاوه دپاره. |

**تشریح:** زمونږ دليل دادې. چه عقد کتابت يو عقد معاوضه ده. ( د نکاح او وکالت وغيره په معنی کي نه دي). ځکه چي مکاتب لپاره د يد د مالکيت او آقا لپاره د بدل کتابت مطالبه ثابت شوې ده. اود معاوضې تقاضه داده. چه مساوات ( او برابري ) وی. لکه عقد کتابت د احد المتعاقدينو، يعنی د آقا په مرګ سره نه باطليږي. بلکه په اتفاق سره پاته پاتې کيږي. دغه ډول به د مکاتب په مرګ سره هم نه باطليږي. ځکه چي حالت مشترکه د حق ژوندی کاوه حاجت دې. چه د آقا د مرګ نه روسته د عقد پاته پاتې کيدلو اړتيا ځکه



دي. چه ددې مقصود پورې رسيدل اوشي. يعنی ولاء حاصل شي. نو هم دغه ډول د مکاتب د مرګ نه روسته هم عقد پاته اوساتلې شي. چه ده ته آزادۍ شرف حاصل شي.

| |
|---|
| **بَلْ أَوْلَى** بلکه په درجه اولی به پاته ساتلې شي. **لِأَنَّ حَقَّهُ آكَدُ مِنْ حَقِّ الْمَوْلَى حَتَّى لَزِمَ الْعَقْدُ فِي جَانِبِهِ**، ځکه چي د غلام حق د آقا د حق په نسبت زيات مؤکد دې. تردې چي دده په اړخ کي دا عقد لازميږي. |

**تشریح:** بلکه د مکاتب د مرګ په صورت کي به عقد کتابت په درجه اولی پاته ساتلې شي. ځکه چي د مکاتب حق د آقا د حق په نسبت زيات مؤکد دې. ځکه چي د مکاتب په اړخ کي دا عقد لازميږي. تردې که آقا دا باطلول اوغواړي. نو باطل کولې نې نشي. ددې په خلاف چي آقا ته کوم د بدل کتابت استحقاق دې. هغه نه لازميږي. تردې که مکاتب پخپله خپل ځان عاجز کړي. نود آقا د بدل حق باطليږي. نود آقا حق کوم چي غير مؤکد دې. هرکله چي دده په مرګ سره هغه نه باطليږي. نود مکاتب حق کوم چي زيات مؤکد دې. هغه به دده په مرګ سره په طريقه اولی نه باطليږي.

| |
|---|
| **وَالْمَوْتُ أَنْفَى لِلْمَالِكِيَّةِ مِنْهُ لِلْمَمْلُوكِيَّةِ** او مرګ د مملوکيت په نسبت د مالکيت زياته نفي کونکې دې. |

**تشریح:** امام شافعي رحمه الله چي په عقلي دليل کي کوم ترديد ذکر کړې وو. دا د هغې په دوې (دوه) طريقو ځواب دې. چه هغې کي هر يو زمونږ د اصحابو يو جماعت اختيار کړې دې. د ځواب تشريح داده. چه د مکاتب د آزادۍ ثبوت په هره طريقه ممکن ده. ځکه چي د مرګ نه روسته د آزادۍ ثابتيدلو په صورت کي به غلام ژوندې فرض کولې شي. دغه ډول د تجهيز او تکفين په حق کي او د دريمې برخې (حصې) د مال نه د وصيت نافذ کاوه په حق کي به هم ژوندې فرض کولې شي.

| |
|---|
| **فَيُنَزَّلُ حَيًّا تَقْدِيرًا**، نو غلام به ژوندې فرض کولې شي. |

**تشریح:** او مرګ د مملوکيت په نسبت د مالکيت زياته نفي کونکې دې. ځکه چي مملوکيت د مقدوريت او مقهوريت ( يعنی عجز) نه عبارت دې. او مالکيت د قادريت او قاهريت نه عبارت دې. هم دا وجه ده. چه جماد مملوک کيدلو سره متصف کيداې شي. مالک کيدلو سره نشي متصف کيدې. او مرګ د مقدوريت او مقهوريت په نسبت د قادريت او قاهريت زياته نفي کونکې دې. نو هرکله چي د اقوی المتنافيين په موجودګۍ کي د ادنی الحاجتين په لحاظ سره عقد پاته ساتل جائز اوګرځولی شو. نو ادنی المتنافيين سره د اعلی الحاجتين په لحاظ عقد پاته ساتل په طريقه اولی جائز وی. په نورو الفاظو کي داسې اووايئ. چه هرکله د آقا د مرګ په وجه عقد پاته اوساتلې شو. حالانکه په دې کي مالکيت نشته. نود مکاتب د مرګ په وجه به په درجه اولی پاته ساتلې کيږي. چه دلته کي مملوکيت نشته.

| |
|---|
| **أَوْ تَسْتَنِدُ الْحُرِّيَّةُ بِاسْتِنَادِ سَبَبِ الْأَدَاءِ إِلَى مَا قَبْلَ الْمَوْتِ** يا د ادا د سبب استيناد په وجه به آزادي هم د مرګ نه وړاندې اړخ ته مستند وی. |

**تشریح:** يا د مرګ نه وړاندې د ژوند په آخري جزء کي به دده د آزادۍ حکم کولې شي. او د آزادۍ سبب کوم چي مال ادا کول دی. هغه چونکه د مرګ نه وړاندې اړخ ته منسوب دې. په دې وجه به آزادي هم د مرګ نه وړاندې اړخ ته مستند وی.

❓ **سوال**۞ ممکن ده چي څوک دا اووائي. چه په دې صورت کي شرط باندې د مشروط تقديم لازميږي ؟

| |
|---|
| **وَيَكُونُ أَدَاءُ خَلَفِهِ كَأَدَائِهِ**، او دده د خليفه اداکول به پخپله دده د ادا کاوه په درجه کي وی. **وَكُلُّ ذٰلِكَ مُمْكِنٌ عَلَى مَا عُرِفَ تَمَامُهُ فِي الْخِلَافِيَّاتِ** او دا واړه ممکن دی. لکه چي خلافيات کي ددې پوره بحث معلوم دې. |

**تشریح:** سره ددې ځواب ورکوی. چه د مکاتب د نائب ادا کول په په منزله دهغه پخپله د ادا کاوه وی. «فلا يلزم تقديم المشروط».

❓ **سوال**۞ اداء د فعل حسي دې. او استناد په تصرفاتو شرعيه کي کيږي ؟

**جواب:** ټیک ده.خود نائب فعل منوب اړخ ته مضاف دي.او دا اضافت شرعیه دي.لکه که یو کس ښکار باندې غشي اوچلوی.او د غشي لګیدلو نه وړاندې د غشي ایشتونکی انتقال اوشی.ددې نه روسته ښکار ته غشي اولګی.نو دا ښکار هم دده ملك وی.حالانکه مړي د ملکیت لائق نه دي.خو چونکه ددې سبب صحیح شو.په دې وجه ملك دده د ژوندې آخري لمحاتو اړخ ته مستند شو.او ثابت شو.هم دغه ډول دلته کې دی.

## د مکاتب د اولاد حکم

قَالَ (وَإِنْ لَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً) او که ده دومره کافی مال پرې نخودلو. وَتَرَكَ وَلَدًا مَوْلُودًا فِي الْكِتَابَةِ البته په کتابت کې پیدا شوې بچې ئې پرېښولو. سَعَى فِي كِتَابَةِ أَبِيهِ عَلَى نُجُومِهِ نو هغه به د خپل پلار په کتابت کې مزدوری کوی.د هغه په قسطونو باندې. فَإِذَا أَدَّى کله چې هغه ادا کړی. حَكَمْنَا بِعِتْقِ أَبِيهِ قَبْلَ مَوْتِهِ نو موږ به حکم ورکوو.د هغه د پلار د آزادئ. د هغه د مرګ نه وړاندې. وَعِتْقِ الْوَلَدِ) او خوئي به هم آزاد وی. لِأَنَّ الْوَلَدَ دَاخِلٌ فِي كِتَابَتِهِ ځکه چې خوئي د هغه په کتابت کې داخل دي. وَكَسْبُهُ كَكَسْبِهِ او د خوی مزدوری په منزله د هغه د مزدورئ ده. فَيَخْلُفُهُ فِي الْأَدَاءِ نو هغه ددې په ادا کاوه کې د خپل پلار خلیفه شو. وَصَارَ كَمَا إِذَا تَرَكَ وَفَاءً او داسې شوه.ګویا چې هغه مال پرېښودې دې.

**تشریح:** او که مذکوره مکاتب دومره مال پرې نخودلو.چه د بدل کتابت ادا کاوه لپاره کافی شی.البته یو داسې خوئي ئې پرېښولو .کوم چې د کتابت په حالت کې پیدا شوې وو.نو هغه د خپل پلار په کتابت کې د هغه د قسطونو مطابق مزدوری کوی.اود بدل ادا کاوه نه روسته به حکم ورکولې شی.چه دهغه پلار د خپل مرګ نه وړاندې آزاد شوې وو.او د هغه خوئي به هم ازاد وی.ځکه چې دې د هغه په کتابت کې داخل دي.

## کتابت کښې د اخستې شوی د مکاتب د مرګ نه روسته حکم

(وَإِنْ تَرَكَ وَلَدًا مُشْتَرًى فِي الْكِتَابَةِ که په کتابت کې ئې اخستې خوئي پرېښولو . قِيلَ لَهُ نو هغه ته به وئیلې شي. إِمَّا أَنْ تُؤَدِّيَ الْكِتَابَةَ حَالَّةً چې یا ته فی الحال بدل کتابت اداکړه. أَوْ تُرَدَّ رَقِيقًا) یا به ته واپس غلام کولې شې. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ (۱) د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. وَأَمَّا عِنْدَهُمَا يُؤَدِّيهِ إِلَى أَجَلِهِ اعْتِبَارًا بِالْوَلَدِ الْمَوْلُودِ فِي الْكِتَابَةِ، اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به ادا کوی.پخپله موده کې .په کتابت کې پیدا شوی خوی باندې قیاس کاوه سره. وَالْجَامِعُ او امر جامع دادې. أَنَّهُ يُكَاتَبُ عَلَيْهِ تَبَعًا لَهُ وَلِهَذَا يَمْلِكُ الْمَوْلَى إِعْتَاقَهُ چې هغه هم مکاتب دې.مړی باندې تبعاً.په دې وجه آقا د هغه د آزادولو مالك وی. بِخِلَافِ سَائِرِ أَكْسَابِهِ. په خلاف د هغه د نورو مزدورو،

**تشریح:** د یو مکاتب غلام انتقال اوشو.او هغه داسې اولاد پرېښولو .کوم ئې چې د کتابت په حالت کې اخستې وو.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به اولاد ته وئیلې شی.چه یا خو ته فوراً بدل کتابت ادا کړه.ګنې غلام جوړ شه.د صاحبینو او امام مالك رحمهم الله په نیز دده حکم هم د هغه اولاد پشان دې.کوم چې د کتابت په حالت کې پیدا شوې وی.یعنی هغه به د خپل پلار د قسطونو مطابق بدل کتابت اداکوی.

نو صاحبینو اخستې شوې غلام په پیدا شوی غلام باندې قیاس کړې دې.او د قیاس علت مشترکه دادې.چه دواړه تبعاً مکاتب کیږی.چه اخستې شوې خوئي هم مکاتب باندې بې اختیاره مکاتب کیږی.په دې وجه آقا ته دا اختیار شته.که هغه غواړی.نو هغه دې آزاد کړی.په خلاف د هغه د نورو مزدورو،چه آقا په هغې کې تصرف نشی کولې.تردې چې خپل اخستې شوی غلامان نشی آزادولې.

(۱) القول الراجح هو قول أبی حنیفة رحمه الله كذا فی ردالمحتار(۷۸\۵) ومجمع الأنهر(۲۶\۴) وكنز الدقائق (۳۳۰) والدرالمنتقى (۲۵\۴، ۲۶) نقلاً عن القول الراجح (۲۴۷\۲)



وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْفَصْلَيْنِ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل او هم دا توپیر دې په دواړو فصلونو کې دا دې. أَنَّ الْأَجَلَ يَثْبُتُ شَرْطًا فِي الْعَقْدِ چې موده عقد کې شرط کیدلو سره ثابتیږی. فَيَثْبُتُ فِي حَقِّ مَنْ دَخَلَ تَحْتَ الْعَقْدِ نو دا به په هرهغه حق کې ثابتیږی.کوم چې د عقد لاندې داخل شوې وی. وَالْمُشْتَرَى لَمْ يَدْخُلْ حالانکه اخستې شوې نه دې داخل شوې. لِأَنَّهُ لَمْ يُضَفْ إِلَيْهِ الْعَقْدُ ځکه چې دا عقد نه هغه اړخ ته مضاف دې. وَلَا يَسْرِي حُكْمُهُ إِلَيْهِ او نه د عقد حکم هغه اړخ ته رسیږی. لِانْفِصَالِهِ، بِخِلَافِ الْمَوْلُودِ فِي الْكِتَابَةِ لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ وَقْتَ الْكِتَابَةِ فَيَسْرِي الْحُكْمُ إِلَيْهِ وَحَيْثُ دَخَلَ فِي حُكْمِهِ سَعَى فِي نُجُومِهِ

**تشریح:** او هرکله چې هغه د کتابت په حکم کې داخل شو.نود پلار په قسطونو کې به مزدوری کوی.

**تشریح:** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل چې په دې سره اخستې شوی خوی ،او پیدا شوی خوی کې توپیر هم ښکاره کیږی.چه تاجیل ( نیته او موده) هغه وخت ثابتیږی.کله چې عقد کې ددې شرط وی.او دهغه په حق کې ثابتیږی.کوم چې د عقد لاندې داخل وی.او اخستې شوې اولاد د عقد لاندې داخل نه دې.ځکه چې هغوی اړخ ته نه د عقد اضافت دې.او نه هغوی پورې د عقد حکم رسیږی.په خلاف د هغه اولاد کوم چې د کتابت په حالت کې پیدا شوې وی.چه هغه د کتابت په وخت مکاتب سره متصل وو.په دې وجه د عقد حکم هغوی ته اورسیدلو.ځکه به هغه د پلار د قسطونو مطابق ادا کوی.

(فَإِنِ اشْتَرَى ابْنَهُ که خپل خوئي ئې واخستلو، ثُمَّ مَاتَ بیا مړ شو. وَتَرَكَ وَفَاءً اود بدل ( کتابت ادا کولو) لائق مال ئې پرېښولو . وَرِثَهُ ابْنُهُ) نود هغه خوئي به دهغه وارث وی. لِأَنَّهُ لَمَّا حَكَمَ بِحُرِّيَّتِهِ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ ځکه چې هرکله د ژوندې په آخري جزء کې د هغه د آزادئ حکم ورکړې شو. يُحْكَمُ بِحُرِّيَّةِ ابْنِهِ فِي ذَلِكَ الْوَقْتِ نو د دغه وخت څخه به د هغه د آزادئ حکم هم ورکولې شی. لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِأَبِيهِ فِي الْكِتَابَةِ ځکه چې هغه کتابت کې د خپل پلار تابع دي. فَيَكُونُ هَذَا حُرًّا يَرِثُ عَنْ حُرٍّ نودا یو آزاد شو.چه ده د آزاد میراث حاصل کړو.

**تشریح:** او که مکاتب خپل خوئي واخستلو.بیا مکاتب مړشو.اود بدل کتابت لائق مال ئې پرېښولو .نود بدل کتابت ادا کاوه نه روسته د پاته پاتې شوی مال وارث به دهغه خوئي وی.ځکه چې هرکله د مکاتب د ژوند آخري لمحاتو کې د هغه د آزادیدلو حکم ورکړې شو.نو هم هغه وخت څخه به د هغه د خوی د آزادیدلو حکم هم ورکولې شی.ځکه چې خوئي په کتابت کې د خپل پلار تابع دې.نو دا داسې شوه.لکه چې آزاد خوی د آزاد پلار میراث حاصل کړو.

(وَكَذَلِكَ إِنْ كَانَ هُوَ وَابْنُهُ مُكَاتَبَيْنِ كِتَابَةً وَاحِدَةً) دغه ډول که هغه او د هغه خوئي دواړه په یو کتابت کې مکاتب شوی وی. لِأَنَّ الْوَلَدَ إِنْ كَانَ صَغِيرًا ځکه که خوئي صغیر وی. فَهُوَ تَبَعٌ لِأَبِيهِ، نو هغه د خپل پلار تابع شو. وَإِنْ كَانَ كَبِيرًا او که بالغ وی. جُعِلَا كَشَخْصٍ وَاحِدٍ، نو دواړه به په مرتبه د یو سړی ګرځولې شی. فَإِذَا حَكَمَ بِحُرِّيَّةِ الْأَبِ نو هرکله چې د پلار د آزادئ حکم ورکړې شو. يُحْكَمُ بِحُرِّيَّتِهِ فِي تِلْكَ الْحَالَةِ عَلَى مَا مَرَّ نو هم په دې حالت کې به د خوی د آزادئ حکم هم وی.لکه څنګه چې تیر شو.

**تشریح:** دغه ډول که مکاتب او دهغه خوئي دواړه په یو کتابت کې مکاتب وی.بیا هم دغه حکم دې.ځکه که خوئي وړوکې دې.نو هغه د خپل پلار تابع دې.او که هغه بالغ دې.نو هغوی دواړه په منزله د یو سړی ګرځولې شی.ځکه چې هرکله کتابت هم واحد دې.او ددې قسطونه هم واحد دی.نو که هغوی بدل کتابت ادا کړی.نو دواړه به یو ځائې آزادیږی.او که بدل کتابت ادا نکړی.نو دواړه به غلامئ اړخ ته واپس کولې شی.او پلار چونکه د خپل ژوند آخري لمحاتو کې آزاد ګرځولې شوې دی.په دې وجه هم دهغه وخت څخه به د هغه د خوی د آزادئ حکم هم ورکولې شی.بیا د کتابت واحده قید ځکه دې.که په دوی کې هریو جلا عقد سره

مکاتب وی.او خوني د خپل پلار د مرګ نه روسته بدل کتابت ادا کړي.نو خوني به د پلار وارث نه وی.لکه څنګه چې شيخ محبوبي ذکرکړي دی.څکه چې دې صورت کې خوني مقصود بالکتابة دې.او دده آزادی به د استناد نه بغير د بدل کتابت ادا کاوه د وخت نه کيږي.څکه چې استناد خو د اړتيا په وجه کيږي.او دلته کي دده په حق کې هيڅ اړتيا نشته.او هرکله چې دده آزادی مستند نشوه.نو هغه د خپل پلار د مرګ په وخت غلام وو.په دې وجه به د هغه وارث هم نه وی.

**د مکاتب د مرګ نه روسته يو مجتهد فيه صورت**

قَالَ (وَإِنْ مَاتَ الْمُكَاتَبُ يو مکاتب مړشو. وَلَهُ وَلَدٌ مِنْ حُرَّةٍ او د هغه يو خوني دې.د آزادي ښځي نه. وَتَرَكَ دَيْنًا وَفَاءً بِمُكَاتَبَتِهِ او داسي قرضه ئي پريخودله.چه د هغې نه د هغه کتابت ادا کيداې شي. فَجَنَى الْوَلَدُ بيا خوی جنايت (جرم) اوکړو. فَقُضِيَ بِهِ عَلَى عَاقِلَةِ الْأُمِّ چې د هغې حکم د مور په عاقله (مددګار خاندان) باندې ورکړې شو. لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ قَضَاءً بِعَجْزِ الْمُكَاتَبِ) نودا به د مکاتب د عاجز کيدلو حکم نه وی. لِأَنَّ هَذَا الْقَضَاءَ يُقَرِّرُ حُكْمَ الْكِتَابَةِ،څکه چې دا فيصله خو د کتابت حکم مضبوطوی. لِأَنَّ مِنْ قَضِيَّتِهَا إِلْحَاقُ الْوَلَدِ بِمَوَالِي الْأُمِّ څکه چې د کتابت مقتضاء د خوی موالی مور سره لاحق کوی. وَإِيجَابُ الْعَقْلِ عَلَيْهِمْ او عقل (تاوان) هم په هغوی واجبوی. لَكِنْ عَلَى وَجْهٍ يَحْتَمِلُ أَنْ يُعْتَقَ خو په داسې طور چې هغې کې دا احتمال وی.چه دا خوني آزاد شوې دې. فَيَنْجَرُّ الْوَلَاءُ إِلَى مَوَالِي الْأَبِ،نو ولاء د پلار موالی اړخ ته راکاږي. وَالْقَضَاءُ بِمَا يُقَرِّرُ حُكْمَهُ لَا يَكُونُ تَعْجِيزًا او کومه فيصله چې د کتابت حکم مضبوط کړي.هغه عاجز ګرځول نه وی.

**تشريح:** يو مکاتب مړ شو.په داسې حال کې چې د آزادې ښځي نه ئې يو خوني او په خلګو باندې ئې څپله دومره قرضه پريخودله.چه هغه د بدل کتابت لپاره کافی کيداې شی.او دده خوی څه جنايت يعنی جرم اوکړو.چه ددې د تاوان فيصله قاضی دده د مور په عاقله باندې اوکړله.نو د قاضی په دې فيصلې به دا نه ثابتيږي.چه هغه مکاتب د بدل کتابت ادا کاوه نه عاجز ګرځولې دې.څکه چې د کتابت تقاضه هم دا وه.چه د هلك موالی مور سره ملاو کړي.چه د پلار د اړخه بدل کتابت اداکيدلو باندې پلار سره لاحق شی.نو قاضی چې کومه فيصله کړې ده.په هغې سره د مقتضاء نوره مضبوطی هم اوشوه.

(وَإِنِ اخْتَصَمَ مَوَالِي الْأُمِّ وَمَوَالِي الْأَبِ فِي وَلَائِهِ كه جګړه اوکړله.موالی د مور، او موالی دپلار د خوی په ولاء کې، فَقَضَى بِهِ لِمَوَالِي الْأُمِّ او قاضی د هغې حکم د مور موالی لپاره ورکړو. فَهُوَ قَضَاءٌ بِالْعَجْزِ) نودا د عاجز کيدلو حکم دې. لِأَنَّ هَذَا اخْتِلَافٌ فِي الْوَلَاءِ مَقْصُودًا،څکه چې په ولاء کې بالقصد اختلاف دې. وَذَلِكَ يَبْتَنِي عَلَى بَقَاءِ الْكِتَابَةِ وَانْتِقَاضِهَا، چې دا د کتابت په پاته پاتې کيدلو، او ماتيدلو باندې مبنی دې. فَإِنَّهَا إِذَا فُسِخَتْ څکه که کتابت فسخ شی. مَاتَ عَبْدًا نو مکاتب غلامۍ کې مړ شو. وَاسْتَقَرَّ الْوَلَاءُ عَلَى مَوَالِي الْأُمِّ او د خوی ولاء به د مور په موالی باندې لازم وی. وَإِذَا بَقِيَتْ وَاتَّصَلَ بِهَا الْأَدَاءُ مَاتَ حُرًّا وَانْتَقَلَ الْوَلَاءُ إِلَى مَوَالِي الْأَبِ، وَهَذَا فَصْلٌ مُجْتَهَدٌ فِيهِ او دا صورت چونکه مجتهد فيه دې. فَيَنْفُذُ مَا يُلَاقِيهِ مِنَ الْقَضَاءِ په دې وجه کومه فيصله چې دې سره ملاو شوې وی.هغه به نافذ کولې شی. فَلِهَذَا كَانَ تَعْجِيزًا په دې وجه دا قضاء دده د عاجز کاوه حکم دې.

**تشريح:** البته که دا هلك مړشی.او موالی د پلار او موالی د مور په دې ولاء کې جګړه اوکړي.د مور موالی اووائی.چه دده موالی مونږ ته ملاويدل پکار دی.څکه چې هغه د غلامۍ په حالت کې مړ شوې دې.اود پلار موالی اووائی.چه ولاء مونږ ته ملاويدل پکار دی.څکه چې هغه آزاد مړشوې دې.او قاضی ددې بچی ولاء د مور موالی ته ورکړي.نو په دې سره به د مکاتب عاجز کيدل ثابتيږي.څکه چې دا اختلاف په قصد سره ولاء کې واقع شوې دې.چه دا د کتابت په بقاء او ددې په انتقاض (ماتولو) باندې مبنی دې.څکه که کتابت فسخ شی.نو مذکوره مکاتب به په غلامۍ کې مړ وی.او د خوی ولاء به د مور موالی کې ثابت وی.اوکه کتابت



پاته پاتې شی.او بدل کتابت ادا شی.نو هغه به ازاد مړ شوې وی.او ولاء به د پلار موالی اړخ ته منتقل کيږي.او دا فصل چونکه مجتهد فيه دې.لکه چې وړاندې تير شو.چه د حضرت زيد بن ثابت رضی الله عنه په نيز په مرګ د مکاتب سره کتابت فسخ کيږي.اود بعضو صحابو رضی الله عنهم په نيز کتابت نه فسخ کيږي.په دې وجه د قاضی د مور د موالی په حق کې د ولاء فيصله کول په مجتهد فيه فصل کې فيصله اوشوه.نو بالاجماع به نافذ کيږي.په دې وجه د قاضی دا حکم ددې مکاتب د عاجز کيدلو حکم شو.

**د مکاتب د اړخه مالك ته د صدقې خيرات ورکولو حکم**

قَالَ (وَمَا أَدَّى الْمُكَاتَبُ مِنَ الصَّدَقَاتِ إِلَى مَوْلَاهُ کوم څه چې مکاتب ادا کړل د صدقاتو ځنې خپل آقا ته، ثُمَّ عَجَزَ فَهُوَ طَيِّبٌ لِلْمَوْلَى لِتَبَدُّلِ الْمِلْكِ) نو دا مال حلال دې.د آقا دپاره.د ملك بدل تللو په وجه. فَإِنَّ الْعَبْدَ يَتَمَلَّكُهُ صَدَقَةً څکه چې غلام هغه ته د صدقې په طور، وَالْمَوْلَى عِوَضًا عَنِ الْعِتْقِ، او آقا د عوض په طور حاصل کړې دې.

**تشريح:** که مکاتب د زکاة او صدقې وغيره مال واخلي.او بدل کتابت کې ئې ورکړي.او بيا د پاته بدل کتابت ادا کاوه نه عاجز شی.نو آقا لپاره دا مال حلال دې.څکه چې ملك بدل شو.يعنی مکابت دا مال د صدقې په طور اخستې وو.او آقا د غلام آزادولو په عوض کې اخستې دې.او په شريعت کې د ملك بدليدل، د عين شئ بدليدلو په مرتبه کې دی.د حضرت بريره رضی الله عنها متعلق د نبی کريم ﷺ ارشاد «هو لها صدقة و لنا هدية» کې هم دې اړخ ته اشاره ده.

**سوال:** ملك رقبه خو د آقا ده.بيا د ملك بدليدلو تصور څنګه کيداې شی؟

**جواب:** د آقا ملك رقبه د مکاتب د ملك يد په مقابله کې مغلوب وو.تردې چې مکاتب دا اختيار وو.چه هغه آقا ته پخپل ملك کې د تصرف کاوه نه منع کړي.او آقا ته دا اختيار نه وو.چه هغه مکاتب د تصرف کاوه نه منع کړي.بيا د مکاتب په عاجز کيدلو سره معامله برعکس شوه.،، و ليس هذا يتبدل الملك.،

وَإِلَيْهِ وَقَعَتِ الْإِشَارَةُ النَّبَوِيَّةُ فِي حَدِيثِ بَرِيرَةَ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهَا په حديث د بريره رضی الله عنها کې هم دې اړخ ته د نبی کريم ﷺ اشاره واقع شوې ده. {هِيَ لَهَا صَدَقَةٌ چې هغه دده لپاره صدقه ده. وَلَنَا هَدِيَّةٌ} (1) او زمونږ لپاره هديه ده.

**تشريح:** ددې تخريج شيخينو رحمهما الله د حضرت عائشه رضی الله عنها نه کړې دې. «دخل النبي ﷺ و برمة على النار فقرب إليه خبز و إدام من إدم البيت فقال ألم أر البرمة؟ فقيل لحم تصدق به على بريرة رضی الله عنها و أنت لا تكل الصدقة قال هو لها صدقة و لنا هدية»، نبی کريم ﷺ کور ته تشريف راوړلو.په چولهې (نغری) باندې کټوئ پرته وه.نو د نبی کريم ﷺ مخې ته ډوډئ او د کور سالن (ترکاری) پيش کړې شوه.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.آيا ما کټوئ نه کتله؟ عرض کړې شو.دا غوښه ده.چه بريره رضی الله عنها ته په صدقه کې ورکړې شوې ده.او تاسو صدقه نه خورئ.نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.هغه ددې لپاره صدقه ده.او زمونږ لپاره هديه ده.،،

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَبَاحَ لِلْغَنِيِّ وَالْهَاشِمِيِّ،او دا ددې خلاف دې.کله چې يو توانګر يا هاشمی لپاره مباح کړي. لِأَنَّ الْمُبَاحَ لَهُ يَتَنَاوَلُهُ عَلَى مِلْكِ الْمُبِيحِ،څکه چې د چا لپاره ئې مباح کړې دې.هغه په ده د مباح کونکی په ملك باندې خوری. وَنَظِيرُهُ الْمُشْتَرِي شِرَاءً فَاسِدًا نو ملك بدل نشو.څکه به حلال نه وی.ددې مثال د فاسد په طور د اخستې شوی شئ دې. إِذَا أَبَاحَ لِغَيْرِهِ لَا يَطِيبُ لَهُ که هغه غير ته مباح کړي.نو هغه لپاره نه حلاليږي. وَلَوْ مَلَّكَهُ يَطِيبُ، اوکه مالك جوړ کړي.نو حلاليږي.

**تشريح:** مذکوره حکم ددې خلاف دې.کله چې فقير د صدقې مال يو توانګر هاشمی لپاره مباح کړو.مثلاً وې وئيل .اوخورئ.چه هغوی لپاره د صدقې دا مال نه حلاليږي.څکه چې ده د چا لپاره مباح کړې دې.هغه به دا

(1) من حديث عائشة(رض) أخرجه البخاری فی الأطعمة باب ۳۲ ومسلم فی العتق رقم ۱۴ والنسائی فی الطلاق باب ۲۹ ومالک فی الطلاق رقم ۲۵ وأحمدفی المسند (۶\۱۷۸)_

د مباح ګونګي په ملك باندي خوري. ځكه د مباح ګاوه مطلب دادي چه زما د ملك نه څه خوري خوره.نو ملك تبديل نشو نو توانګر او هاشمي لپاره به ددي خوراك جائز نه وي.

بِلا عَجَزَ قَبْلَ الْأَدَاءِ إِلَى الْمَوْلَى او كه آقا ته د ور كاوه نه وړاندي عاجز شو. فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ بيا هم خواب هم داسي دي. وَهَذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ ظَاهِرٌ او دا د امام محمد ﷫ په نيز خو ښكاره دي. لِأَنَّ بِالْعَجْزِ يَتَبَدَّلُ الْمِلْكُ عِنْدَهُ ځكه چي ددوى په نيز عاجز كيدلو سره ملك بدليږي. وَكَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَإِنْ كَانَ بِالْعَجْزِ يَتَقَرَّرُ مِلْكُ الْمَوْلَى عِنْدَهُ او هم دغه ډول د امام ابويوسف ﷫ په نيز هم. اګرچه ددوى په نيز عاجز كيدلو سره د آقا ملك ثابتيږي. لِأَنَّهُ لَا خُبْثَ فِي نَفْسِ الصَّدَقَةِ ځكه چي د صدقې په ذات كي هيڅ خباثت (او خرابتيا) نشته. وَإِنَّمَا الْخُبْثُ فِي فِعْلِ الْآخِذِ خبث (خرابتيا) خو ددي په اخستلو كي دي. لِكَوْنِهِ إِذْلَالًا بِهِ. ځكه چي په دي كي ذلت دي. وَلَا يَجُوزُ ذَلِكَ لِلْغَنِيِّ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ نو دا غنى ته د اړتيا نه بغير جائز نه دي. وَلِلْهَاشِمِيِّ لِزِيَادَةِ حُرْمَتِهِ او نه هاشمي ته (جائز دي). د هغه د زيات احترام په وجه. وَالْأَخْذُ لَمْ يُوجَدْ مِنَ الْمَوْلَى او اخستل او نه موندي شو. د آقا د طرفه. فَصَارَ كَابْنِ السَّبِيلِ إِذَا وَصَلَ إِلَى وَطَنِهِ داسي شوه. لكه چي مسافر خپل وطن ته اورسيدلو. وَالْفَقِيرِ إِذَا اسْتَغْنَى نو او فقير توانګر شو. وَقَدْ بَقِيَ فِي أَيْدِيهِمَا مَا أَخَذَا مِنَ الصَّدَقَةِ په داسي حالت كي چي هغوى سره په صدقه كي اخستي شوى كي څه پاته پاتي دى. فَإِنَّهُ يَطِيبُ لَهُمَا، چي هغه هغوى لپاره حلاليږي.،، وَعَلَى هَذَا إِذَا أُعْتِقَ الْمُكَاتَبُ و على هذا،، كه مكاتب آزاد كړي شو. وَاسْتَغْنَى او هغه مستغني (مالدار) شو. يَطِيبُ لَهُ مَا بَقِيَ مِنَ الصَّدَقَةِ فِي يَدِهِ نو په صدقه كي چي كوم څه هغه سره پاته وى.هغه دده لپاره حلال دي.

**تشريح:** كه مذكوره مكاتب آقا ته د صدقې مال ور كاوه نه وړاندي عاجز شو. بيا هم دا حكم دي چه آقا لپاره حلال دي. د امام محمد ﷫ په نيز ځكه چي ددوى په نيز عاجز كيدلو سره ملك بدليږي. او د امام ابويوسف ﷫ په نيز عاجز كيدلو سره اګرچه ملك نه بدليږي بلكه متقرر كيږي. البته په نفس صدقه كي هيڅ خرابي نشته بلكه خرابي خو ددي په اخستلو كي ده. چه دا د ذلت موجب دي. او د آقا د اړخه اخستل او نه موندي شو. نو آقا داسي شو. لكه چي مسافر د لارې د حاجت په وجه صدقه واخستله. بيا وطن ته راغى: يا فقير صدقه واخستله. او هغه توانګر شو. او حال دا چي هغوى سره د صدقې څه مال پاته دي. نو پاتي شوي مال په دي حالت كي هم حلال وي.

**د غلام يا د مكاتب د جرم په وجه آقا لپاره حكم**

قَالَ (وَإِذَا جَنَى الْعَبْدُ) غلام څه جرم اوكړو (فَكَاتَبَهُ مَوْلَاهُ) او آقا دي مكاتب كړو. (وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْجِنَايَةِ) او ده ته (د جرم) پته نه وه. (ثُمَّ عَجَزَ) بيا غلام عاجز شو. (فَإِنَّهُ يَدْفَعُ) نو آقا كه غواړى غلام دي وركړي. (أَوْ يَفْدِي) كه غواړى د هغي فديه دي وركړي. لِأَنَّ هَذَا مُوجِبُ جِنَايَةِ الْعَبْدِ فِي الْأَصْلِ ځكه چي اصل كي د غلام د جرم حكم هم دا دي. وَلَمْ يَكُنْ عَالِمًا بِالْجِنَايَةِ عِنْدَ الْكِتَابَةِ او آقا د كتابت په وخت جرم نه خبر نه وو. حَتَّى يَصِيرَ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ إِلَّا أَنَّ الْكِتَابَةَ مَانِعَةٌ مِنَ الدَّفْعِ تردي چي هغه د فديه اختيارولو والا شي. خو كتابت مانع دي. د غلام ور كاوه نه. فَإِذَا زَالَ هركله چي دا مانع لرې شو. عَادَ الْحُكْمُ الْأَصْلِيُّ نو اصل حكم واپس راغى: (وَكَذَلِكَ إِذَا جَنَى الْمُكَاتَبُ) او دول كه مكاتب جرم اوكړو. (وَلَمْ يُقْضَ بِهِ حَتَّى عَجَزَ) او اوسه پورې د فديه حكم نه وو شوي. چه هغه عاجز شو. لِمَا بَيَّنَّا مِنْ زَوَالِ الْمَانِعِ وجه هم دغه مانع ختميدل دي.

**تشريح:** غلام څه جرم اوكړو آقا ته ددي خبر نه وو. هغه دي مكاتب كړو. بيا مكاتب د بدل كتابت ادا كاوه نه عاجز شو. نو آقا ته اختيار دي. كه غواړى غلام دي هغه سړى ته حواله كړي. دچا چي ده قصور (جرم) كړي دي. او كه غواړى د هغه دقصور تاوان دي وركړى. ځكه چي اصل كي د غلام د جرم حكم هم دادي. او آقا چونكه په وخت د كتابت دهغه د جرم نه خبر نه وو. په دي وجه به هغه په مكاتب كاوه سره فديه اختيارونكي



نه وي. صرف دومره خبره ده. چه د آقا مكاتب كول د غلام ور كاوه نه مانع دى. او هركله چي دا مانع ختم شو. نو اصلي حكم به واپس راځي.

(وَإِنْ قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِ فِي كِتَابَتِهِ) او كه د جرماني حكم مكاتب باندي وركړي شو. د هغه د كتابت په حالت كي (ثُمَّ عَجَزَ) بيا هغه عاجز شو. (فَهُوَ دَيْنٌ يُبَاعُ فِيهِ) نو دا يوه قرضه ده. چي په دي كي به خرڅولې شي. لِانْتِقَالِ الْحَقِّ مِنَ الرَّقَبَةِ إِلَى قِيمَتِهِ بِالْقَضَاءِ په وجه د منتقل كيدلو د حق د جرم دده د رقبې نه. دده قيمت اړخ ته. وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دا د طرفينو ﷫ قول دي. وَقَدْ رَجَعَ أَبُو يُوسُفَ إِلَيْهِ او هم دي اړخ ته امام ابويوسف ﷫ رجوع كړې ده. وَكَانَ يَقُولُ أَوَّلًا مخكي به دوى دا وئيل. يُبَاعُ فِيهِ وَإِنْ عَجَزَ قَبْلَ الْقَضَاءِ، چي غلام به خرڅولې شي. اګرچه د قضاء نه وړاندي عاجز شي. وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ هم دا د امام زفر ﷫ قول دي. لِأَنَّ الْمَانِعَ مِنَ الدَّفْعِ وَهُوَ الْكِتَابَةُ قَائِمٌ وَقْتَ الْجِنَايَةِ، ځكه چي ور كاوه نه كوم امر مانع ده. يعني كتابت هغه د جرم په وخت موجود دي. فَكَمَا وَقَعَتْ انْعَقَدَتْ مُوجِبَةً لِلْقِيمَةِ كَمَا فِي جِنَايَةِ الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ. نو جرم چي كوم وخت واقع شو. هغه به دقيمت په موجب واقع كيږي. لكه څنګه چي د مدبر او ام ولد په جنايت كي كيږي.

**تشريح:** او كه په مذكوره مكاتب باندي د تاوان ور كاوه حكم اوشو. بيا هغه د بدل كتابت ادا كاوه نه عاجز شو. نو اوس به دا تاوان د هغه په ذمه دين وى. او په دي سلسله كي به هغه خرڅولې شي. ځكه چي د قاضى د حكم په وجه د جرم حق دده د رقبې نه دده قيمت اړخ ته منتقل شو. دا د طرفينو ﷫ قول دي. او د امام ابويوسف ﷫ مرجوع اليه قول هم دادي. د امام ابويوسف ﷫ رومبي قول دادي. چه ددي حق په سلسله كي به مذكوره غلام خرڅولې شي. اګرچه دده عاجز كيدل د قاضى د حكم نه وړاندي وى. امام زفر ﷫ هم ددي قائل دي.

وجه داده. چه جرم والا ته د غلام ور كاوه نه كوم امر مانع دي. يعني كتابت، هغه د جرم كاوه په وخت موجود دي. نو جرم چي كوم وخت واقع شو. هغه موجب د قيمت واقع شو. لكه څنګه چي د مدبر او ام ولد په جرم كاوه كي كيږي. چه ددوى جرم صرف په واقع كيدلو سره موجب د قيمت وى. فرق صرف دادي. چه د مدبر د جرم حكم دادي. چه آقا باندي واجبيږي. ځكه چي د مدبر مزدورى د آقا وى. او د مكاتب د جرم حكم دادي. چه هغه پخپله په ده باندي واجبيږي.،، لأن كسبه ملكه،،

وَلَنَا زموږ دليل دادي. أَنَّ الْمَانِعَ قَابِلٌ لِلزَّوَالِ لِلتَّرَدُّدِ چي كوم امر مانع دي. هغه په وجه د تردد قابل د زوال دي. وَلَمْ يَثْبُتِ الِانْتِقَالُ فِي الْحَالِ او فى الحال منتقل كيدل ثابت نشو. فَيَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَضَاءِ أَوِ الرِّضَا په دي وجه به په قضاء يا رضاء باندي موقوف وى.

**تشريح:** زموږ دليل دادي. چه كوم امر مانع دي. (يعني كتابت)، هغه په وجه د تردد (او شك) قابل د زوال دي. يعني اوس لا تردد دي. چه شايد ادا ئې كړي. او آزاد شي. يا عاجز شي. او غلام شي. (نو كتابت به زائل شي). نو فى الحال مذكوره حق د هغه د رقبې نه د هغه قيمت اړخ ته نه دي منتقل شوي. نو د قاضى په حكم يا پخل منځ كي رضامندئ باندي به موقوف وى. حاصل دا چي د مكاتب جرم زموږ په نيز مال نه وى. خو په قضاء يا خپل منځ كي رضامندئ سره يا د بدل ادا كاوه لائق تركه پريږدى. او مړ شي.،، وعند زفر ﷫ تصير مالاً فى الحال،،

وَصَارَ كَالْعَبْدِ الْمَبِيعِ إِذَا أَبَقَ قَبْلَ الْقَبْضِ او دا داسي شوه. لكه چي خرڅ شوي غلام د قبضي نه وړاندي اوتختى. يَتَوَقَّفُ الْفَسْخُ عَلَى الْقَضَاءِ لِتَرَدُّدِهِ وَاحْتِمَالِ عَوْدِهِ، چي د بيع فسخ كيدل قضاء باندي موقوف وى. ددي د تردد او واپسى احتمال په وجه. كَذَا هَذَا، هم دغه ډول دلته كي دى. بِخِلَافِ التَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ به خلاف د مدبر كاوه او ام ولد جوړولو. لِأَنَّهُمَا لَا يَقْبَلَانِ الزَّوَالَ بِحَالٍ چي دا په هيڅ حال كي د زوال قابل نه دي.

**تشريح:** د مذكوره مكاتب حكم داسي شو. لكه چي خرڅ كړي شوي غلام د قبضي نه وړاندي اوتختى. چه د بيع

فسخ کاوه حکم د قاضي په حکم باندې موقوف پاتې کيږي.ځکه چې ددې د واپس کيدو احتمال سره تردد
دی.دغه ډول به دلته کې هم وی.په خلاف د مدبر کاوه او م ولد جوړولو، چې دا په هيڅ حال کې هم قابل د
زوال نه دې. ﴿لكان الموجب في الابتداء هو القيمة﴾

**د آقا په مرګ سره د عقد کتابت حکم**

قَالَ (وَإِذَامَاتَ الْمَوْلَى الْمُكَاتِبُ) که د مکاتب آقا مړشی.لَمْ تَنْفَسِخِ الْكِتَابَةُ) نو کتابت به نه فسخ کیږی.كي لا
يُؤَدِّي إِلَى إِبْطَالِ حَقِّ الْمُكَاتِبِ، چې دا حق د مکاتب ابطال ارخ ته اونه رسوی.إِذِالْكِتَابَةُ سَبَبُ الْحُرِّيَّةِ ځکه چې
کتابت د آزادئ سبب دی.وَسَبَبُ حَقِّ الْمَرْءِ حَقُّهُ اود سړی د آزادئ سبب هم دده حق وی.

تشریح: که د مکاتب آقا مړشی.نو کتابت نه فسخ کیږی.چه ددې نتیجه دا نه وی.چه د مکاتب حق ختم
شی.وجه داده.چه کتابت د آزادئ سبب دې.او آزادی د مکاتب حق دې.او د کوم کس د آزادئ چې کوم سبب
وی.هغه هم د هغه حق وی.نو کتابت د هغه حق شو.اود مرګ په وجه حق نه باطليږی.لکه چې د یو کس د بل
په ذمه پور وی.او د پور والا مړ شی.نو پور نه باطليږی.

(وَقِيلَ لَهُ) و مکاتب ته به ونيلې شی.أَدِّ الْمَالَ إِلَى وَرَثَةِ الْمَوْلَى عَلَى نُجُومِهِ) چې د آقا وارثانو ته مال ادا کړه.د
خپلو قسطونو مطابق.لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ الْحُرِّيَّةَ عَلَى هَذَا الْوَجْهِ ځکه چې هغه د آزادئ مستحق هم په دې طريقه شوی
وو.وَالسَّبَبُ انْعَقَدَ كَذَلِكَ او هم په دې طريقه سبب منعقد شوې وو.فَيَبْقَى بِهَذِهِ الصِّفَةِ وَلَا يَتَغَيَّرُ نو هم په دې صفت به
پاته پاتې کيږی.حکم به نه بدليږی.

تشریح: اوس به مذکوره مکاتب ته ونيلې شی.چه د آقا وارثانو ته بدل کتابت د قسطونو مطابق ادا کړه.ځکه
چې هغه د آزادئ مستحق په دې طريقه شوې وو.او هم په دې طريقه سبب منعقد شوې وو.نو هغه به هم په
دې صفت باندې پاته وی.او په دې کې به هيڅ توپير نه کيږی.وجه داده.چه آقا کله صحيح او تندرست وی.(
يعنی بيمار نه وی ).نود هغه د پوره بدل کتابت موجل ( نيته وار) کاوه تصرف صحيح کيږی.لکه څنګه چې
د پوره بدل کتابت ساقطولو تصرف صحيح وی.او دلته د مسئلې په صورت کې چونکه على الاطلاق
دې.ددې نه معلومه شوه.چه آقا صحيح او تندرست وو.نو د هغه تصرف صحيح شو.په خلاف ددې کله چې
آقا بيمار وی.او هغه غلام مکاتب کړی.په دې صورت کې مکاتب يا خو فی الحال خپل دوې (دوه) ثلثه
قيمت اداکړی.يا به دې غلام کولې شی.ځکه چې د بيمارئ په صورت کې د آقا د تاجيل او اسقاط تصرف د
دريمې برخې (حصې) مال نه علاوه کې نه صحيح کيږی.

إِلَّا أَنَّ الْوَرَثَةَ يَخْلُفُونَهُ فِي الِاسْتِيفَاءِ البته وارثان به د هغه خليفه وی.په وصولولو کې.

تشریح:سوال⊛د مخکنی قول ،، ولا يتغير،، نه استثناء ده.اګرچه د يو سوال خواب دې.سوال دادې.چه د آزادئ
سبب څنګه نه بدليږی.کله چې د آقا حق پوره بدل حاصلول وو.چه هغه وارثانو لپاره شو.اوهم دا بدلول دی ؟
جواب⊛ حاصل د خواب دادې.چه د آقا وارثان به صرف د مال کتابت په وصولولو کې د هغه خليفه وی.او
صرف دومره خبرې سره نه حق بدليږی.نه عقد کتابت ،، لانها باقية كما كانت،، لکه چې د يوکس د يو سړی په
ذمه پور وی.او د پور والا مړشی.نو په وصولولو کې د هغه وارثان د هغه قائم مقام وی.او قرضدار لکه څنګه
چې مورث ( قرضخواه) ته ادا کاوه سره بری کيږی.دغه ډول وارثانو ته ادا کاوه سره هم بری کيږی.نو لکه
څنګه چې په نورو تولو قرضونو کې وارثان دهغه خليفه وی.او دې ته بدليدل نه وائی.دغه ډول په دين د
کتابت کې هم خلافت ته توپير نشی ونيلې.

(فَإِنْ أَعْتَقَهُ أَحَدُ الْوَرَثَةِ) بيا که يو وارث دې آزاد کړو.لَمْ يَنْفُذْ عِتْقُهُ) نو دده آزادول به نه نافذ کيږی.لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُ،
ځکه چې هغه دده مالك نه دې.وَهَذَا لِأَنَّ الْمُكَاتَبَ لَا يُمْلَكُ بِسَائِرِ أَسْبَابِ الْمِلْكِ او ددې وجه داده.چه مکاتب د ملك



په نورو اسبابو سره نه مملوك کيږی.فَكَذَا بِسَبَبِ الْوِرَاثَةِ. نو هم دغه ډول به د وراثت په سبب سره هم نه کيږی.

تشریح: بيا که د آقا وارثانو کې يو وارث مذکوره مکاتب آزاد کړو.نو د هغه آزادول به نه نافذ کيږی.ځکه چې
هغه دده مالك نه دې.ځکه چې مکاتب په اسبابو د ملك کې په هيڅ سبب سره نه مملوك کيږی. ﴿و لا عتق فيما
لا يملكه ابن آدم﴾ په شرح اقطع کې دی.چه د امام شافعی رحمه الله په يو قول کې دده آزادول نافذ کيږی. ﴿لأنه
يصح عنده بيع المكاتب و يصح ان يملك﴾

وَإِنْ أَعْتَقُوهُ جَمِيعًا البته که واړه وارثان نې آزاد کړی.عَتَقَ نو آزاد به وی.وَسَقَطَ عَنْهُ بَدَلُ الْكِتَابَةِ او دده څخه به
بدل کتابت ساقط شی.لِأَنَّهُ يَصِيرُ إِبْرَاءً عَنْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ ځکه چې دا به د بدل کتابت ادا کاوه نه بری کول
وی.فَإِنَّهُ حَقُّهُمْ ځکه چې عوض د هغوی حق دې.وَقَدْ جَرَى فِيهِ الْإِرْثُ او په دې کې وراثت جاری شو.وَإِذَا بَرِئَ الْمُكَاتَبُ
عَنْ بَدَلِ الْكِتَابَةِ نو هرکله چې مکاتب د بدل کتابت نه بری شو.يُعْتَقُ نو آزاد به وی.كَمَا إِذَا أَبْرَأَهُ الْمَوْلَى لکه
که آقا دې بری کړې وې.إِلَّا أَنَّهُ إِذَا أَعْتَقَهُ أَحَدُ الْوَرَثَةِ خو که يو وراث آزاد کړو.لَا يَصِيرُ إِبْرَاءً عَنْ نَصِيبِهِ نودا به دهغه د
برخې (حصې) نه نه بری کيږی.لِأَنَّا نَجْعَلُهُ إِبْرَاءً اقْتِضَاءً تَصْحِيحًا لِعِتْقِهِ. ځکه چې مونږ دده عتق صحيح کاوه لپاره د
فيصلې په طريقه بری کول ثابته وو.وَالْعِتْقُ لَا يَثْبُتُ بِإِبْرَاءِ الْبَعْضِ أَوْ أَدَائِهِ فِي الْمُكَاتَبِ لَا فِي بَعْضِهِ وَلَا فِي كُلِّهِ او د
بعضو په بری کاوه يا ادا کاوه سره مکاتب کې آزادی نه ثابتيږی.نه دده په کل کې نه په جزء کې. وَلَا وَجْهَ إِلَى
إِبْرَاءِ الْكُلِّ لِحَقِّ بَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ د کل ( يعنی د پوره) بری کاوه خو هيڅ وجه نشته.د پاته وارثانو د حق په
وجه.والله اعلم.

تشریح: او که دده لره ټولو وارثانو آزاد کړو.نو د قياس تقاضه هم دا ده.چه اوس هم جائز نه وی.ځکه چې ددوی
تصرف هغه ارخ ته مضاف شوې دې.کوم چې ددوی ملك نه دې.خو استحساناً به آزاد وی.او دده د ذمې
څخه به بدل کتابت ساقطيږی.وجه د استحسان داده.چه ددوی ټولو آزادول د بدل کتابت نه بری کول
دی.ځکه چې مذکوره عوض ددوی حق دې.په کوم کې چې وراثت جاری شوې دې.نو هغوی ته د
خپل حق پريښولو اختيار دې.او هرکله چې مکاتب د کتابت د عوض نه بری شو.نو هغه به آزاديږی. لکه که
آقا پخپله هغه بری کړې وی.نو هغه به آزاديدلو.

سوال⊛ ممکن ده.چه څوك دا اووائی.چه د يو په آزادولو سره هم آزاديدل پکار دی.ځکه چې د يو آزادول د
دخپلې برخې (حصې) نه بری کول دی ؟

جواب⊛ دادې.چه دا نشی کيدې.ځکه چې مونږ اعتاق بری کول ګرځولی دی.اودا د عقد صحيح کاوه لپاره
د فيصلې په طور کړی دی.اود بعضو په بری کاوه يا ادا کاوه سره په مکاتب کې اعتاق نه ثابتيږی.نه دده په
جزء کې نه په کل کې.

## (كِتَابُ الْوَلَاءِ)

ژباړه: ( دا) کتاب د ولاء ( د احکامو په بيان کې ) دې.

تشریح: د کتاب المكاتب نه روسته ئې کتاب الولاء ذکرکړې دې.ځکه چې ولاء د بدل کتابت ادا کاوه په وخت
د ملك رقبه د زوال په ذريعه د کتابت د آثارو څخې دې.او دا اګرچه د اثارو د اعتاق څخې هم دې.خو په
ړومبئ طريقه باندې د تيرشوو کتابونو او بابونو د ترتيب موجباتو د کتابت تذکره تړې دې خايه راؤ
رسوله.چه د هغې په وجه کتاب الولاء د کتاب المكاتب نه موخر کول ضروری شو.چه موثر باندې د اثر
تقديم لازم نشی.

ولاء په لغت کې د ولی يلی نه مشتق دې.( او د باب ضربَ نه قليل الاستعمال دې.په معنی د قريب او نږدې
کيدلو،د ړومبی شئ نه روسته دوهم شئ د فصل نه بغير حاصليدل، ونيلې شی.،،داره ولی داری،، د هغه کور
زما کور سره نږدې دې. ﴿و قال ﷺ ليلينى منكم أولو الأحلام و النهى﴾ ولاء د عتاقه او ولاء د موالاة ته ولاء ځکه .

ونيلي شي. چه ددې دواړو حکم يعني وراثت ملاويدل د شرط موجود کيدلو په وخت د فصل نه بغير کيږي. بعضو حضراتو ذکرکړي دی. چه ولاء او ولاية په معنی د نصرت او محبت دي. خو په شريعت کي ددې اختصاص ولاء د عتق او د موالاة ولاء سره شوي دي. نو ولاء په شريعت کي د تناصر نه عبارت دي کوم چه په ذريعه د اعتاق وی. اوکه په ذريعه د عقد موالاة وی. خکه مبسوط کي ونيلي شوی دی. «والمطلوب بكل واحد منهما التناصر»

صاحب د نتائج رحمه الله فرماني. چه په دي کلام کي نقص او خرابي دي. خکه چي د مبسوط مذکوره عبارت په دي دلالت کوی. چه تناصر د ولاء عتاقه او د ولاء موالاة دواړو نه علاوه دي. دا نه چي تناصر بعينه ولاء دي. خکه دا خبره بالکل ښکاره ده. چه کوم شي د شي نه مطلوب وی. هغه به بعينه شي نه وی. بلکه د هغې غير وی. «إذ لا معنى لكون الشيء وسيلة إلى نفسه» نو د مبسوط عبارت نه په دي خبره اشتباه نه کيږي. چه په شريعت کي ولاء د عتاقه او ولاء د موالاة د تناصر نه عبارت دي.

په شرح د عنايه کي دی. چه ولاء په لغت کي د نصرت او محبت نه عبارت دي. اودا د ولی په معنی د قرب نه مشتق دي. او په عرب فقهاؤ کي موجب د ارث او عقل (ميراث او تاوان) د تناصر نه عبارت دي. خو دا کلام هم د څه خلل نه خالی نه دي. خکه چي ولاء کوم چي د ولی په معنی د قرب او نيزديوالی نه مشتق دي. هغه د نصرت او محبت نه عبارت نشي کيدي. بلکه هغه به د قرابت (رشته داري) نه عبارت وی. خکه چي اشتقاق لپاره د دوي (دوه) لفظونو په منځ کي په لفظ او معنی دواړو کي مناسبت پکار دي. حالانکه ولی په معنی د قرب او ولاء په معنی د نصرت او محبت په منځ کي هيڅ معنوی مناسبت نشته. بلکه ولی په معنی د قرب او ولاء په معنی د قرابت کي لفظی او معنوی تناسب دي. په دي وجه کافی او کفايه کي دی. «هو من الولي بمعنى القرب و يقال بينهما ولاء أى قرابة و منه قوله ﷺ الولاء لحمة كلحمة النسب أى وصلة كوصلة النسب»

فائده: د اصل ولاء ثبوت قرآن او حديث دواړو کي موجود دي. د الله تعالى ارشاد دي ﴿فَإِن لَّمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ﴾ احاديث هم په دي اړه کي زيات نقل دی. ① «قال النبي ﷺ الولاء لمن أعتق (صحيحين) ② نهى رسول الله ﷺ عن بيع الولاء و هبة (أيضاً عن ابن عمر رضي الله عنهما) ③ قال النبي ﷺ لعن الله من تولى غير مواليه (ترمذی) ④ عن عبدالله بن أبي أوفى قال لي النبي ﷺ الولاء لحمة كلحمة النسب لا يباع و لا يوهب (ابن جرير في تهذيب الآثار)»

## د ولاء شرعي تعريف او قسمونه

> **الْوَلَاءُ نَوْعَانِ**: د ولاء دوي (دوه) قسمونه دی. **وَلَاءُ عَتَاقَةٍ** ولاء عتاقه، **وَيُسَمَّى وَلَاءَ نِعْمَةٍ** دي ته ولاء د نعمت هم وائی.

**تشريح:** په اصطلاح د شريعت کي ولاء د هغه ميراث استحقاق ته وائی. کوم چي آزاد شوی غلام سره يا د موالاة په وجه حاصل شی. ددې دوي (دوه) قسمونه دی. ① ولاء عتاقه ② ولاء موالاة.... ولاء عتاقه ته ولاء د نعمت هم وائی. چه په دي کي د حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه په اړه کي آيت کي د ارشاد ﴿وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِي أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ﴾ اقتداء ده. «أى انعم الله عليه بالإسلام و أنعمت عليه بالإعتاق»

> **وَسَبَبُهُ الْعِتْقُ عَلَى مِلْكِهِ فِي الصَّحِيحِ، حَتَّى لَوْ عَتَقَ قَرِيبُهُ عَلَيْهِ بِالْوِرَاثَةِ** ددې سبب په صحيح قول خپل ملک باندي آزادی ده. تردي که آزاد شو. دده قريبی رشته دار، په ده باندي د وراثت په وجه. **كَانَ الْوَلَاءُ لَهُ**. نو د هغه ولاء به هم ده ته ملاويږی. **وَوَلَاءُ مُوَالَاةٍ، وَسَبَبُهُ الْعَقْدُ** او ولاء موالاة ددې سبب عقد دي. **وَلِهَذَا يُقَالُ وَلَاءُ الْعَتَاقَةِ وَوَلَاءُ الْمُوَالَاةِ** په دي وجه دي ته ولاء عتاقه او ولاء موالاة وائی. **وَالْحُكْمُ يُضَافُ إِلَى سَبَبِهِ**، او حکم خپل سبب اړخ ته مضاف کيږی.

ولاء عتاقه سبب د صحيح قول مطابق عتق دي. يعنی دا چي غلام دده په ملک باندي آزاد شی. (که [illegible]ادولو سره وی. اوکه دده نه بغير وی) د، «في الصحيح»، قيد په ذريعه زموږ د بعضو اصحابو د قول نه



احتراز دي. چه ددې سبب اعتاق (ازادول) دي په دليل د حديث «الولاء لمن أعتق» په وجه احتراز دادي چه مذکوره استدلال ضعيف دي. خکه چي کوم سړي د خپل قريبی رشته دار مالک شی. نو هغه په ده باندي آزاديږی. اګرچه د وراثت په وجه وی. او د هغه ولاء هم ده ته حاصليږی. حالانکه پخپله ده آزاد کړي نه دي. بلکه هغه پخپله استحقاقاً آزاد شوي دي. نو زياته صحيح هم داده. چه ددې سبب عتق دي اعتاق نه دي

او دوهم ډول يعني ولاء د موالاة سبب عقد دي. يعني خپل منځ کي د موالاة عهد او پيمان کول. په دي وجه ولاء ددې سبب اړخ ته مضاف کاوه ته ولاء عتاقه او ولاء موالاة وائی. او ولاء د اعتاق نه وائی.

> **وَالْمَعْنَى فِيهِمَا التَّنَاصُرُ**، او معنی په دي دواړو کي خپل منځ کي نصرت کول دی. **وَكَانَتِ الْعَرَبُ تَتَنَاصَرُ بِأَشْيَاءَ** او د عربو خلګو به په ډيرو څيزونو کي خپل منځ کي د يو بل کومک کولو **وَقَرَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَاصُرَهُمْ بِالْوَلَاءِ بِنَوْعَيْهِ** او نبی کريم ﷺ د ولاء دواړو قسمونو کي ددوی تناصر پاته ساتلي دي **فَقَالَ**: ارشاد ئې اوفرمائيلو. {**إِنَّ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ**} د قوم مولا به هم د هغوی څخه وی **وَحَلِيفُهُمْ مِنْهُمْ**}(¹) او د قوم حليف به هم د هغوی څخه وی. **وَالْمُرَادُ بِالْحَلِيفِ مَوْلَى الْمُوَالَاةِ** حليف نه مراد مولا د موالاة دي **لِأَنَّهُمْ كَانُوا يُؤَكِّدُونَ الْمُوَالَاةَ بِالْحَلِفِ** خکه چي د عربو خلګو به موالاة حلف سره مؤکد کولو.

**تشريح:** د صاحب د عنايه رحمه الله رائي داده. چه «و المعنى فيهما التناصر»، سره د ولاء عتاقه او ولاء موالاة شرعی مفهوم بيانول مقصود دی. خو په قول د صاحب د نتائج رحمه الله دا خبره خکه محل د بحث ده. چه ددې شرعی مفهوم مطلق تناصر نه دي. بلکه هغه تناصر دي. کوم چي موجب د ارث او عقل وی. نو که دلته د علامه مرغينانی رحمه الله مقصد شرعی مفهوم بيانول وو. نو موصوف به تناصر مطلق نه ساتلو. بلکه کومه خبره چي ددې په مفهوم کي معتبر ده. هغې سره به ئې مخصوص کړي وو. او که ددوی مفهوم على الاطلاق بيانول مقصود وو. که لغوی وی. او که شرعی وی. نو موصوف به داسې ونيلي.» و معناهما التناصر»، نو حق خبره داده چه ددې نه د علامه مرغينانی رحمه الله مراد هغه شي بيانول دی. کوم چي د ولاء عتاقه او ولاء موالات نه مقصود وی. په دي وجه صاحب د کافی د،، والمعنى فيهما التناصر»، په ځائي داسې ونيلي دی.،، والمطلوب بكل واحد منهما التناصر»، او په مبسوط کي هم داسې واقع شوي دي. بهرحال د قول مطلب دادي. چه د ولاء عتاقه او د ولاء موالات نه کوم شي مطلوب او مقصود وی. هغه تناصر دي. يعنی خپل منځ کي د يو بل کومک او نصرت کول. لکه چي د نبی کريم ﷺ نه وړاندي د عربو خلګو قرابت، صداقت، مواخاة، حلف، عصبه. ولاء عتاقه. ولاء موالات په ډيرو څيزونو کي خپل منځ کي نصرت کولو. چه هغي کي نبی کريم ﷺ د ولاء دواړه قسمونو کي تناصر پاته اوساتلو. لکه ارشاد ئې اوفرمائيلو. «مولى القوم منهم قوله ﷺ أن مولى القوم منهم....» دا حديث د څلورو صحابه کرامو رضي الله عنهم رفاعه بن رافع زرقی، ابوهريره، عمرو بن عوف او عتبه بن غزوان رضي الله عنهم نه نقل دي. د حديث رفاعه رضي الله عنه تخريج امام احمد رحمه الله په مسند کي ابن ابی شيبه رحمه الله په مصنف کي، طبرانی په معجم کي او حاکم په مستدرک کي کړي دي. او دي ته ئې صحيح الاسناد ئې ونيلي دی. «قال رسول الله ﷺ مولى القوم منهم و ابن أختهم منهم و حليفهم منهم» امام بخاری رحمه الله په ،،المفرد في الأدب،، کي يوه قصه هم ذکرکړي ده.

د ابوهريره رضي الله عنه د حديث تخريج بزار په مسند کي کړي دي. «عن النبي ﷺ قال حليف القوم منهم و ابن أختهم منهم» د عمرو بن عوف رضي الله عنه د حديث تخريج دارمی، ابن ابی شيبه، ابن راهويه رحمهم الله پخپلو مسانيدو کي، طبرانی په معجم کي، او ابراهيم حربی په کتاب غريب الحديث کي کړي دي. هغي کي د قصي نه روسته دی. «قال رسول الله ﷺ ابن أخت القوم منهم و حليفهم منهم و مولاهم منهم» د عتبه رضي الله عنه د حديث تخريج طبرانی په معجم کي کړي دي. «قال رسول الله ﷺ ابن أخت القوم منهم و حليف القوم منهم»

## د ولاء عتاقه احکام

---

(¹) من حديث رفاعة بن رافع رضي الله عنه أخرجه أحمد في المسند(٣٤٠/٤).

قَالَ (وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى مَمْلُوكَهُ) كله چې آقا خپل مملوك آزاد كړو. (فَوَلَاؤُهُ لَهُ) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نو دده ولاء به آقا لپاره وي. د نبی كريمﷺ د ارشاد په وجه. {الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ}(١)، چې ولاء هغه كس لپاره دي. چا چې آزاد كړو.

تشريح: كله چې آقا خپل مملوك آزاد كړي. او هغه مړشي. او خپل هيڅ وارث پرينږدي. نو د هغه تركه به آزاد شوی ته ملاويږي. څكه چې آئمه سته د حضرت عائشه ﷞ نه روايت كړې دي. «أنها لما إشترت بريرة ﷞ إشترط أهلها أن ولاءها لهم فسألت عائشة ﷞ النبيﷺ فقال إعتقيها فإنما الولاء لمن أعتق» ،، كله چې حضرت عائشه ﷞ حضرت بريره ﷞ واخستله. نو د هغې خلگو دا شرط اوكړو. چه ددې ولاء به زمونږ لپاره وي. حضرت عائشه ﷞ د نبي كريمﷺ نه پوښتنه اوكړو. نبی كريمﷺ اوفرمائيل. دا آزاده كړه. بې شكه ولاء هغه چا لپاره دي. څوك چې آزاد كړي ،، وجه د استدلال داده. چه د،، الولاء،، لام جنس او د،، لمن أعتق،، لام اختصاص دواړه په دې باندې دلالت كوي. چه جنس ولاء معتق لپاره دي. ددې دغير لپاره نه دي. لكه څنګه چې د الله تعالى د قول ،، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ،، په اړه كي عالمانو وئيلی دی. چه په دې كي لام د جنس او لام اختصاص دواړه په دې دلالت كوی. چه جنس محامد د الله تعالى سره مختص دی.

بهرحال ولاء د معتق لپاره وي. ددې نه نه منتقل كيږي. د حضرت عمر، حضرت علی ، زيد بن ثابت، ابن مسعود، ابی بن كعب، ابن عمر، ابومسعود بدری ، او اسامه بن زيد﷛ نه داسې نقل دی. او عطاء، طاؤس، سالم بن عبدالله، حسن بصری ،ابن سيرين، شعبی ، نخعی ، زهری ، قتاده، ابو الزناد، ابن نشيط، سفيان ثوری ، اسحاق، ابو ثور، امام مالك، امام شافعی ، احناف ﷬ واړه ددې قائل دی. اود امام احمد ﷬ نه هم د يو جماعت روايت هم دادي. «و شذ شريح فقال الولاء كالمال يورث عن المعتق فمن ملك شيئاً حياته فهو لورثته بعد موته»

وَلِأَنَّ التَّنَاصُرَ بِهِ او څكه چې اعتاق سره خپل منځ كې نصرت كيږي. فَيَعْقِلُهُ نو د هغې تاوان به هم پوره كوی. وَقَدْ أَحْيَاهُ مَعْنًى بِإِزَالَةِ الرِّقِّ عَنْهُ او آقا هغه لره معنی ژوندي كړې دي. د هغه رقيت لرې كاوه سره. فَيَرِثُهُ نو د هغه وارث به هم وي. وَيَصِيرُ الْوَلَاءُ كَالْوِلَادِ او ولاء د ولاد ( يعنی د خوی د رشتې) پشان وي. وَلِأَنَّ الْغُنْمَ بِالْغُرْمِ او څكه چې نفع په مقابله د تاوان ده.

تشريح: د ولاء د ثبوت اثر دوې (دوه) شيان دی. ① يو ميراث او ② يو عقل ( ديت). د دوهم دليل «ولأن التناصر به فيعقله» دي. اود ړومبی دليل «ولأن الغنم بالغرم» دي. د دليل وضاحت دادې. چه د اعتاق په سبب سره خپل منځ كي نصرت حاصليږي. نو كه آقا دده نه كومك واخستلو. نو هغه به دده د خطاء جرمانه هم برداشت كوی. نو كه معتق ( آزاد شوې غلام) څوك په خطاء سره قتل كړي. نو آقا به سره د خپل خاندان د هغه د ديت بوج اوچتوی. بيا ددې نه وړاندې آقا د هغه غلامی لرې كاوه سره معنوی طور باندې هغه لره ژوندې كړې دې. څكه چې غلامی د كفر اثر دې. او كفر حكمی مرګ دې. «الا يرى إلى قوله تعالى: ﴿أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ﴾ اى كافراً فهديناه» او رقيق حكماً هالك دې. چه دده په حق كي ډير هغه احكام نه ثابتيږي. كوم چې احياء سره متعلق دی. لكه قضاء، شهادت، سعی الی الجمعة ، خروج الی العيدين، ملك فی الاموال، او د اعتاق په ذريعه دا واړه احكام دده په حق كي ثابتيږي. نو دا معنوی طور باندې دده احياء ده. او كوم سړې چې چاته معنوی ژوند وركړي. د هغه وارث كيږي. نو د ولاء ولی د رشتې پشان شو. چه لكه څنګه د بچی د ژوند سبب پلار دې. په دې وجه هغه دده وارث كيږي. دغه ډول معتق ( آزادونكې) د معتق ( آزاد كړې شوی ) وارث

(١) من حديث عائشة(رض) أخرجه البخاری فی الصلاة رقم ٤٥٦ و مسلم فی العتق رقم ٥ وأبوداود فی العتاق باب ٢ والترمذی فی الولاء باب ١ والنسائی فی الطلاق باب ٢٩ وابن ماجه فی الفرائض باب ٥١ وأحمد فی المسند (٣٣\٦)



كيږي. او نفع چونكه په مقابله د تاوان وي. او آقا دده په وجه د تاوان بوج اوچتوی. نو هغه به دده د نفع هم مستحق وي.

سوال: كه آقا خپل څوك نسبی عصبه پرينږدی. نو په دې صورت كي معتق د معتق (يعنی د آقا) وارث كيدل پكار دی. لكه څنګه چې حسن ابن زياد، اسحاق بن راهويه، او بشر مريسی ﷬ ددې قائل دی. حالانكه د عامو عالمانو قول ددې خلاف دې؟

جواب: معتق د معتق په لحاظ سره اجنبی محض دې. اود معتق په اړه كي خلاف قياس نص وارد دې. نو په دې باندې غير نشی قياس كيدې.

وَكَذَا الْمَرْأَةُ تُعْتِقُ لِمَا رَوَيْنَا، دغه ډول ښځه ده. چه هغه آزاد كړي. په دليل د هغه حديث كوم چې موږ روايت كړو. {وَمَاتَ مُعْتَقٌ لِابْنَةِ حَمْزَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنْهَا} اود حضرت حمزه﷛ د لور آزاد كړې شوې ( غلام) مړ شو. چې خپل موالات او يوه لور ئې پريخودله. وَعَنْ بِنْتٍ فَجَعَلَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الْمَالَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ}(١). نو نبي كريمﷺ مال په دوی دواړو كي نيم په نيمه ويش كړو. وَيَسْتَوِي فِيهِ الْإِعْتَاقُ بِمَالٍ وَبِغَيْرِهِ لِإِطْلَاقِ مَا ذَكَرْنَاهُ او برابر دی. په دې كي آزادول د مال په عوض، او د عوض نه بغير. په وجه د مطلق كيدلو د هغه حديث كوم چې موږ ذكر كړو.

تشريح: دغه ډول كه ښځه څوك مملوك آزاد كړي. نو ښځه به هم دهغه د ولاء مستحقه وي. يو خو د ذكرشوی د عائشه ﷞ د حديث په وجه. چه حضرت عائشه ﷞ حضرت بريره ﷞ واخستله. او آزاده ئې كړه. چه د هغې په په اړه كي دا حديث وارد دې. ددې نه علاوه د نبی كريمﷺ ارشاد «الولاء لمن اعتق» كې كلمه د من عام ده. چه دا سړي او ښځې ته ګډ ده. دويمه څكه چې سنن نسائی كي ،، عن عبدالله بن شداد،، نقل دی. «أن إبنة حمزة ﷞ أعتقت مملوكاً لها فمات و ترك إبنته و موالاته فقسم رسول اللهﷺ ماله بينى و بين إبنته فجعل لی النصف و لها النصف» ،، چې د حضرت حمزه بن عبد المطلب﷛ لور امامه ﷞ خپل مملوك آزاد كړو. او هغه غلام خپل موالات او خپله يوه لور پريخودله. نو نبی كريمﷺ د هغې مال زما او د هغې د لور په منځ كي نيم په نيمه ويش كړو،،.

## د ولاء نه د آزادئ په شرط سره د غلام د ولاء حكم

قَالَ (فَإِنْ شَرَطَ أَنَّهُ سَائِبَةٌ) كه شرط ئې كړو. چه دا غلام د ولاء نه آزاد دې. فَالشَّرْطُ بَاطِلٌ نو شرط باطل دې. (وَالْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ) و ولاء به د هغه كس وي. چا چې آزاد كړو. لِأَنَّ الشَّرْطَ مُخَالِفٌ لِلنَّصِّ فَلَا يَصِحُّ څكه چې شرط د نص مخالف دې. نو صحيح به نه وي.

تشريح: كله چې وړاندې دا ثابته شوه. چه ولاء به آزادونكی ته ملاويږي. نو اوس كه په اعتاق كي دا شرط وی. چه دا مملوك به سائبه وي. يعنی د آزادئ نه روسته به د هيڅ چا په ولاء كي نه وي. بلكه هغه به اختيار مند وي. چرته چې غواړي. لاړ دې شي. او څه چې غواړي. كوی دې. «بان قال لا ولاء لأحد عليك أنت سائبة قد أعتقتك سائبة أنت حر سائبة» وغيره نو حسن د حسن بصری ، ابن سيرين، ابراهيم نخعی ، شعبی ، راشد بن سعد، ضمره بن حبيب، اهل عراق، امام شافعی ، او د احنافو ﷬ وغيره د جمهورو عالمانو په نيز به مذكوره شرط باطل وي. او ولاء به هغه كس ته ملاويږي. چا چې آزاد كړې دې. څكه چې مذكوره شرط د حديث د نص خلاف دې.

ددې په خلاف د حضرت عمر بن عبدالعزيز، زهری ، مكحول، ابوالعاليه، او د امام مالك ﷬ په نيز دده ولاء به د جماعت المسلمين لپاره وي. نو هغوی به دده وارث وي. او هم هغوی به دده د اړخه د ديت بوج اوچتوی. په بنايه كي دی. «و فی المنصوص عن أحمد لو خلف مالاً و لم يدع وارثاً إشترى بماله رقاباً فاعتقهم»

(١) من حديث امامة بنت حمزة (رض) أخرجه النسائی فی السنن الكبرى (٨٦\٤)_ رقم ٦٣٩٩)_

قَالَ (وَإِذَا أَدَّى الْمُكَاتَبُ عَتَقَ وَوَلَاؤُهُ لِلْمَوْلَى) او كله چې مكاتب عوض ادا كړو نو هغه آزاد شو او ولاء به د آقا وي (وَإِنْ عَتَقَ بَعْدَ مَوْتِ الْمَوْلَى) اګرچه د آقا د مرګ نه روسته آزاد شوې وي. لِأَنَّهُ عَتَقَ عَلَيْهِ بِمَا بَاشَرَهُ مِنَ السَّبَبِ خكه چې هغه آقا باندې آزاد شوې دې هم هغه سبب سره كوم چې آقا كړې وو. وَهُوَ الْكِتَابَةُ وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي الْمُكَاتَبِ او هغه كتابت دې اودا موږ په كتابت المكاتبت كې بيان كړې دې. (وَكَذَا الْعَبْدُ الْمُوصَى بِعِتْقِهِ أَوْ بِشِرَائِهِ وَعِتْقِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ) دغه ډول هغه غلام دې چه د هغه د آزادولو، يا د خپل مرګ نه روسته د اخستلو او آزادولو وصيت ئې كړې وي. لِأَنَّ فِعْلَ الْوَصِيِّ بَعْدَ مَوْتِهِ كَفِعْلِهِ وَالتَّرِكَةُ عَلَى حُكْمِ مِلْكِهِ خكه چې د هغه د مرګ نه روسته د وصى فعل په مرتبه د هغه د فعل دې او تركه د وصيت كونكى د ملك په حكم باندې ده.

تشريح: دا واړه عبارت د ژباړې نه واضح دې د تشريح محتاج نه دې.

(وَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى) كه آقا مړ شو (عَتَقَ مُدَبَّرُوهُ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ) لِمَا بَيَّنَّا فِي الْعَتَاقِ نو آزاديږى به د هغه مدبر، او د اولاد ميندې، په هغه وجه كومه چې موږ بيان كړله په عتاق كې. (وَوَلَاؤُهُمْ لَهُ) او د هغوى ولاء به هم دده لپاره وي. لِأَنَّهُ أَعْتَقَهُمْ بِالتَّدْبِيرِ وَالِاسْتِيلَادِ خكه چې هغه آزاد كړې دې په مدبر كاوه او ام ولد جوړولو سره (وَمَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ) چې كوم سړې د خپل ذى رحم محرم مالك شى. (عَتَقَ عَلَيْهِ) هغه په ده باندې آزاديږى. لِمَا بَيَّنَّا فِي الْعَتَاقِ (وَوَلَاؤُهُ لَهُ) او د هغه ولاء هم دده لپاره وي. لِوُجُودِ السَّبَبِ د سبب د وجود په وجه. وَهُوَ الْعِتْقُ عَلَيْهِ او هغه په ده باندې ازاديدل دى.

تشريح: ﴿و إن مات المولى عتق مدبروه و أمهات أولاده﴾ باندې دا سوال كيږى. چه مدبر او ام ولد د خپل آقا د مرګ نه روسته آزاديږى. نو آقا ته ددوى د ولاء ملاويدلو كوم يو صورت دې؟ چې آقا مرتد شو. او دارالحرب ته لاړو. (العياذ بالله) او قاضى د هغه د مرګ حكم وركړو. اود هغه د مدبر اود هغه د امهات الاولاد د آزادئ فيصله ئې وركړله. د هغه آقا مسلمان شو. او واپس راغى؛ او مدبر يا ام ولد مړ شو. نو د هغه ولاء به آقا ته ملاويږى.

## د ولاء منتقل كولو يو صورت

(وَإِذَا تَزَوَّجَ عَبْدُ رَجُلٍ أَمَةً لِآخَرَ) كه د يو كس غلام د بل وينځې سره نكاح اوكړله. (فَأَعْتَقَ مَوْلَى الْأَمَةِ الْأَمَةَ) بيا د وينځې آقا وينځه آزاده كړله. (وَهِيَ حَامِلٌ مِنَ الْعَبْدِ) په داسې حالت كې چې وينځه د غلام نه حامله ده. (عَتَقَتْ) نو هغه به آزاديږى. (وَعَتَقَ حَمْلُهَا) او ددې حمل به هم آزاد وي. (وَوَلَاءُ الْحَمْلِ لِمَوْلَى الْأُمِّ لَا يَنْتَقِلُ عَنْهُ أَبَدًا) اود حمل ولاء به دمور آقا ته ملاويږى. د هغه ځخه به هيڅ كله نه منتقل كيږى. لِأَنَّهُ عَتَقَ عَلَى مُعْتِقِ الْأُمِّ مَقْصُودًا خكه چې هغه دمور په آزادونكى باندې په قصد سره آزاد شوې دې. إِذْ هُوَ جُزْءٌ مِنْهَا يَقْبَلُ الْإِعْتَاقَ مَقْصُودًا خكه چې هغه د مور جزء دې چه دا په قصد سره د اعتاق قابل دې. فَلَا يَنْتَقِلُ وَلَاؤُهُ عَنْهُ عَمَلًا بِمَا رَوَيْنَا نو دده ولاء به آقا نه نه منتقل كيږى په عمل كاوه هغه حديث باندې كوم چې موږ روايت كړې دې.

تشريح: مسئله داده چه د زيد يو غلام دې او د بكر يوه وينځه ده. نود زيد غلام د بكر وينځې سره په اجازت صحيح نكاح اوكړله. بيا بكر خپله وينځه په داسې حالت كې آزاده كړله. چه هغه د غلام نه حامله ده. نو حكم داده چه دا وينځه به آزاده وي. او ددې حمل به هم آزاد وي. او د حمل ولاء به د هغه د مور آقا ته ملاويږى. د هغه د پلار آقا ته به نه ملاويږى. خكه چې حمل هم د مور يو جزء دې. او د مور آقا په قصد سره د هغې دا واړه اجزاؤ باندې عتق واقع كړې دې او هغه په قصد سره د اعتاق قابل هم دې. نو هغه هم د مور د آزادونكى د اړخه په قصد سره آزاد شو. نود هغه ولاء به د پلار آقا اړخ ته نه منتقل كيږى. خكه چې آزادونكى لپاره د ولاء



ثابتيدل په نص كې مطلق دى. نو هم په دې به عمل كولې شى.

(وَكَذَلِكَ إِذَا وَلَدَتْ وَلَدًا لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ) هم دغه ډول كله چې هغې بچې راوړو. د شپږ مياشتو نه په كم كې لِلتَّيَقُّنِ بِقِيَامِ الْحَمْلِ وَقْتَ الْإِعْتَاقِ د اعتاق په وخت د حمل د قيام يقينى كيدلو په وجه. (أَوْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ أَحَدُهُمَا لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ) يا هغې دوې (دوه) بچى راوړل. چه هغې كې يو د شپږ مياشتو نه په كم كې دې. لِأَنَّهُمَا تَوْأَمَانِ يَتَعَلَّقَانِ مَعًا. خكه چې هغوى دواړه جوړه دى. چه د هغوى حمل يو ځائې پاتې شوې دې

تشريح: دغه ډول كه دا وينځه د خپلې آزادئ نه روسته د شپږ مياشتو نه په كم كې بچې راوړى. بيا به هم ددې بچى ولاء د هغه د مور آقا ته ملاويږى. خكه چې د آزادئ په وخت حمل كيدل يقينى دې. اوكه دا وينځه دوې (دوه) بچى راوړى. چه هغوى كې يو بچې شپږ مياشتو نه كم كې پيدا شوې دې. بيا به هم د دوى دواړو ولاء د مور آقا ته ملاويږى. خكه چې دا دواړه بچى جوړه دى. چه ددوى قرار (او حمل كيدل) په يو ځائې شوې دې. يعنى د آزادئ په وخت د دواړو حمل كيدل يقينى دى.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا وَالَتْ رَجُلًا او دا ددې خلاف دى. كله چې ښځې د چا سره موالات اوكړو. وَهِيَ حُبْلَى په داسې حالت كې چې هغه حامله ده. وَالزَّوْجُ وَالَى غَيْرَهُ او ميړه د بل سړى سره موالات اوكړو. حَيْثُ يَكُونُ وَلَاءُ الْوَلَدِ لِمَوْلَى الْأَبِ چې د بچى ولاء به د پلار موالى لپاره وي. لِأَنَّ الْجَنِينَ غَيْرُ قَابِلٍ لِهَذَا الْوَلَاءِ مَقْصُودًا. خكه چې د خيټې بچې په قصد سره د داسې موالات قابل نه دې. لِأَنَّ تَمَامَهُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ خكه چې ددې موالات پوره كيدل، ايجاب او قبول سره كيږى. وَهُوَ لَيْسَ بِمَحَلٍّ لَهُ. او جنين (د خيټې بچې) ددې محل نه دې.

تشريح: مذكوره حكم د ولاء موالات خلاف دې. مثلاً ميړه او ښځه مسلمان شو. او جلا جلا موالات ئې اوكړل په دې طريقه چې ښځې يو سړى (مثلاً زيد) سره موالات اوكړو. په داسې حالت كې چې هغه حامله ده. اود هغې ميړه د دوهم سړى (مثلا بكر) سره موالات اوكړو. نو د بچى ولاء به هغه كس لپاره وي. چا سره چې پلار موالات كړې دې. وجه داده. چه كوم بچې د هغې په نس كې دې. هغه په قصد سره د داسې موالات كاوه قابل نه دې. خكه چې دا موالات په ايجاب او قبول سره پوره كيږى. او بچې ددې محل نه دې په خلاف د ولاء عتاقه، چې په دې كې جنين (د حمل بچې) اعتاق سره مقصود وى. ﴿لأنه محل لإضافة العتق إليه و بعد ما صار مقصوداً لا يمكن أن يجعل تابعاً لغيره فى الولاء﴾

قَالَ (فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَ عِتْقِهَا لِأَكْثَرَ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ وَلَدًا) بيا كه وينځې د خان د آزاديدلو نه روسته د شپږ مياشتو نه په زيات كې بچې راوړلو. (فَوَلَاؤُهُ لِمَوَالِي الْأُمِّ) نو د هغه ولاء به د مور موالى لپاره وي. لِأَنَّهُ عَتَقَ تَبَعًا لِلْأُمِّ لِاتِّصَالِهِ بِهَا بَعْدَ عِتْقِهَا خكه چې هغه د مور په تابع كيدلو كې آزاد شوې دې. د مور د آزادئ نه روسته هغې سره د متصل كيدلو په وجه. فَيَتْبَعُهَا فِي الْوَلَاءِ نو ولاء كې به هم د هغې تابع وي. وَلَمْ يُتَيَقَّنْ بِقِيَامِهِ وَقْتَ الْإِعْتَاقِ حَتَّى يَعْتِقَ مَقْصُودًا او په وخت د اعتاق د حمل د قيام يقين نشته. چه په قصد سره آزاد شى.

تشريح: كه مذكوره وينځې د خپلو آزاديدلو نه د شپږ مياشتو نه په زيات موده كې بچې راوړلو. نو د هغه ولاء به هم د هغه د مور آقا ته ملاويږى. په دې شرط چې د هغه پلار نه وى آزاد شوې. لكه څنګه چې وړپسې مسئله كې راروان دى. وجه داده. چه دا بچې د خپلې مور په اتباع كې آزاد شو. خكه چې دمور د آزادئ نه روسته هغه مور سره متصل دې. نو په ولاء كې به هم د مور تابع وى. اود اعتاق په وخت د حمل قائميدلو يقين نشته. چه په قصد سره آزاد شى. لكه څنګه چې مخكنى صورت كې وو.،، فلا جرم عتق تبعاً لها،،

فائده ⊙ په دواړو صورتونو كې توپير داشو. چې په ړومبى صورت كې كله چې د اعتاق په وخت حمل موجود دې. يا بچې د شپږ مياشتو نه په كم كې پيدا شوې دې. چه په دې سره د اعتاق په وخت د موجود

كيدلو يقين دی.نو په دې صورت كي بچې هم په قصد سره ازاد كړې شو.او ازاد كونكې هم هغه اقا دې.چا چي دده مور آزاده كړې ده.نو د آزادونكی څخه به ولاء نه منتقل كيږی.او په دې دوهم صورت كې كله چي د آزادی د وخت نه د شپږ مياشتونه په زيات باندې پيدا شوې دې.چه په دې سره د اعتاق په وخت د حمل موجود كيدلو يقين نشته.نو په دې صورت كي به د بچی آزادی قصداً نه وی.د مور په اتباع كي به وی.تردې چي دا ولاء قابل إنتقال دې.اگرچه بالفعل به دده ولاء د مور آقا لپاره وی.

## د ولاء رابكلو مسئله

﴿فَإِنْ أَعْتَقَ الْأَبُ﴾ بيا كه پلار آزاد كړې شو. ﴿جَرَّ وَلَاءَ ابْنِهِ﴾ نو راكاږی به پلار د خپل خوی ولاء. ﴿وَانْتَقَلَ عَنْ مَوَالِي الْأُمِّ إِلَى مَوَالِي الْأَبِ﴾ و منتقل كيږی به د موالی دمور د اړخ نه د پلار موالی اړخ ته. ﴿لِأَنَّ الْعِتْقَ هَاهُنَا فِي الْوَلَدِ يَثْبُتُ تَبَعًا لِلْأُمِّ﴾ځكه چې دلته كي بچی كي آزادی د مور په اتباع كي ثابته شوه. ﴿بِخِلَافِ الْأَوَّلِ﴾ په خلاف د ړومبی صورت،

**تشريح:** اوكه د بچی پلار آزاد كړې شو.نو اوس به هغه د بچی ولاء راكاږی.او ولاء به د مور موالی نه منتقل كيږی.او د مور موالی اړخ ته به راواپس كيږی.جمهور صحابه كرام، لوئې لوئې تابعين، حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علی ، حضرت زبير، حضرت عبدالله، زيد بن ثابت، مروان، سعيد بن المسيب، حسن بصری ، ابن سيرين، عمر بن عبدالعزيز، ابراهيم نخعی نه هم دا نقل دی.او سفيان ثوری ، ليث بن سعد، اسحاق بن راهويه، ابوثور، ائمه ثلاثه او احناف هم ددې قائل دی.ددې په خلاف مالك بن اوس بن حدثان، ابن شهاب زهری ، داؤد ظاهری ، ميمون بن مهران، او د حميد بن عبدالرحمن په نيز ولاء به د مور موالی نه نه منتقل كيږی.دحضرت عثمان او زيد بن ثابت نه هم داسې روايت دې.خو ابن اللبان ددې انكار كړې دې.

﴿وَهَذَا لِأَنَّ الْوَلَاءَ بِمَنْزِلَةِ النَّسَبِ﴾ اودا ځكه دې.چه ولاء په مرتبه د نسب دې.

**تشريح:** زمونږ دليل دادې.چه ولاء په مرتبه د نسب دې.د نبی كريم ﷺ ارشاد دې. ،، الـولاء لحـمـة،، چې ولاء يو قرابت دې. د قرابت د نسب پشان نه دا خرخولې شی.نه هبه كولې شی.اونه په دې كې وراثت جاری كيداې شی.بيا چونكه نسب د پلار نيكه اړخ ته كيږی.نو هم دغه ډول به ولاء هم د پلار نيكه اړخ ته كيږی.په ړومبی صورت كي چې كوم نسبت د مور موالی اړخ ته شوې وو.هغه د پلار د اهليت نه كيدلو په وجه وو.او كله چې پلار كي د آزادئ په وجه لياقت پيدا شو.نو ولاء به هم هغه اړخ ته واپس راځی.ددې مثال دادې.چه يوې ښځې ميړه سره ملاعنه اوكړله.او هغې نه بچې پيدا شو.چه هغه د اړتيا په وجه د مور قوم اړخ ته منسوب كړې شو.ددې نه روسته پلار اووئيل.چه زه په دې ښځې د زنا تهمت لگولو كي دروغجن ووم.نودا بچې به بيا خپل پلار اړخ ته منسوب كيږی.

**اعتراض** په عبارت ،، و انتقل عن موالی الام،، باندې كافی كي يو اعتراض ذكر كړې شوې دې.او هغه دا چې ولاء د نسب پشان دې.او د نسب ثابتيدلو نه روسته په دې كي د فسخ احتمال نه وی.نو هم دغه ډول د ولاء ثابتيدلو نه روسته هم د فسخ احتمال كيدل پكار نه دې؟

**جواب** دادې.چه ولاء خو نه فسخ كيږی.البته ددې نه زيات ( اعلی ) ولاء پيش كيدلو په وجه به هغه مقدم وی.لكه چې رور عصبه وی.خو كله چې وراثت كي دده نه غوره سړې ښكاره شی.نو د رور عصبيت خو نه باطليږی.خو دغه سړې په ده باندې مقدم كولې شی.دا سوال او ځواب په غاية البيان كي هم ذكر دې.چه هغوی دا د شيخ ابونصر نه رانقل كړې دې.

بيا په ذكر شوی ځواب باندې صاحب د نتائج يو اشكال كړې دې.چه د هغې خاتمه داسې ده.چه د نسب ثبوت په دوې (دوه) قسمه كيږی.يو ثبوت محكم او بل ثبوت غير محكم ( چې اصالة نه وی.بلكه د يو [illegible]ض په وجه وی ) په دې كي ثبوت محكم خو محتمل د فسخ نه وی.پاتې شو ثبوت غير محكم، نو هغه د



عارض د زوال په وخت محتمل د فسخ وی.لكه د لعان كونكی د خوی نسب د لعان كونكی د نفی په وجه د مور نه ثابتيږی. اوكله چې لعان كونكې خپل ځان دروغجن كړی.نود مور نه نسب فسخ كيږی.اود پلار نه ثابتيږی.،، فكذا ثبوت الولاء،،

﴿قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ﴾ نبی كريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دې. {﴿الْوَلَاءُ لُحْمَةٌ كَلُحْمَةِ النَّسَبِ لَا يُبَاعُ﴾ ولاء قرابت دې.چه د نسب د قرابت پشان به نشی خرخولې. ﴿وَلَا يُوهَبُ﴾ او نه به هبه كولې شی. ﴿وَلَا يُورَثُ﴾}(1) نه به په دې كي وراثت جاری كيږی. ﴿ثُمَّ النَّسَبُ إِلَى الْآبَاءِ﴾ بيا نسب د پلار په اړخ كي وی. ﴿فَكَذَلِكَ الْوَلَاءُ﴾ نو هم دغه ډول به ولاء وی. ﴿وَالنِّسْبَةُ إِلَى مَوَالِي الْأُمِّ كَانَتْ لِعَدَمِ أَهْلِيَّةِ الْأَبِ ضَرُورَةً﴾،او د مور موالی اړخ ته نسبت د پلار د عدم اهليت اړتيا سره وو. ﴿فَإِذَا صَارَ أَهْلًا﴾ كله چې پلار ددې لائق شو. ﴿عَادَ الْوَلَاءُ إِلَيْهِ﴾ نو ولاء به هم دده اړخ ته راواپس كيږی. ﴿كَوَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ يَنْتَسِبُ إِلَى قَوْمِ الْأُمِّ ضَرُورَةً﴾ په مرتبه د ملاعنه ښځې د بچی ، چې هغه د اړتيا په وجه د مور قوم اړخ ته منسوب شو. ﴿فَإِذَا أَكْذَبَ الْمُلَاعِنُ نَفْسَهُ﴾ او كله چې لعان كونكی خپل ځان دروغجن كړو. ﴿يَنْتَسِبُ إِلَيْهِ﴾ نو هم دده اړخ ته به منسوب كيږی.

**تشريح:** دا حديث د ابن عمر، ابن ابی اوفی ، ابوهريره، او د حضرت علی څلورو صحابو كرامو نه رانقل دې.چه په دې راسته حديث د ابن عمر متعدد طرق ( اسنادو) سره نقل دې.

**طريق اول** ،، ﴿عن بشر بن الوليد عن يعقوب بن ابراهيم ( الإمام أبي يوسف) عن عبدالله بن عمر عن عبدالله بن دينار عن ابن عمر قال، قال رسول الله ﷺ : الولاء لحمة كلحمة النسب لا يباع و لا يوهب﴾ ،، ددې تخريج ابن حبان د خپل صحيح په دول ثانی كي كړې دې.امام شافعی دا پخپل مسند كې په دې سند سره روايت كړې دې. ﴿أخبرنا محمد بن الحسن عن أبي يوسف القاضي يعقوب بن إبراهيم عن عبدالله بن دينار﴾ او حاكم په مستدرك كې په طريق د امام شافعی روايت كاوه نه روسته وئيلی دی.چه دا حديث صحيح الاسناد دې.او شيخينو ددې تخريج نه دې كړې.شيخ ذهبی هم پخپل تلخيص كي ددوی اتباع كړې ده.

په مسند د امام شافعی كي د عبيدالله ذكر متروك دې.حالانكه د امام محمد په كتاب الولاء كي د ،، عن أبي يوسف عن عبدالله بن عمر عن عبدالله بن دينار عن ابن عمر،، كي ددې تصريح موجود ده.حافظ بيهقی په كتاب المعرفه كي ددوی د اړخه دا عذر پيش كړې دې.چه دامام محمد نه دا حديث امام شافعی پخپل حفظ سره روايت كړې دې.په دې وجه سند كي د عبيدالله د پرېښولو غلطی شوې ده.

**سوال** حافظ بيهقی په كتاب المعرفه كي وئيلی دی.چه دا حديث غير محفوظ دې.ابوبكر نيشاپوری فرمائی.چه حديث مذكوره خطاء دې.يعنی په مذكوره الفاظو سره د حديث رفع خطاء ده.دا الفاظ خو د حسن بصری د مرسل روايت دی.لكه چې د عبدالوهاب ثقفی ، سفيان ثوری ، شعبه، ضحاك بن عثمان، سفيان بن عيينه، سفيان بن بلال، اسماعيل بن جعفر وغيره ثقاتو د يو جماعت روايت هم دادې. ﴿ان النبی ﷺ نهی عن بيع الولاء و عن هبته﴾

**جواب** دا حديث په ذكر شوی الفاظو سره مرسلاً هم نقل دې.او مرفوعاً هم ثابت دې.د مرسل تخريج دارقطنی په طريق د ،، يزيد بن هارون عن هشام بن حسن عن الحسن عن النبی ﷺ،، سره كړې دې.پاتې شو مرفوع نو هغه د مذكوره څلور صحابه كرامو نه نقل دې.او د حديث د ابن عمر د رفع ګڼر طرق ( اسناد) دی.چه هغې كي يو طريق هغه دې.كوم چې پورته ذكرشو.

**طريق دوم** چې ددې تخريج حاكم په كتاب مناقب شافعی كي كړې دې.دا دې. ﴿عن علی بن سليمان الأحمسی ثنا محمد بن ادريس الشافعی ثنا محمد بن الحسن ثنا أبويوسف عن ابی حنيفة عن عبدالله بن دينار...اه﴾ په قول د حاكم امام شافعی دا په ،، عن محمد عن ابی يوسف عن ابن دينار،، سره هم روايت كړې دې.

---

(1) من حديث ابن عمر(رض) أخرجه البيهقى فى السنن الكبرى (١٠\٤٩٤) رقم ٢١٤٣٣ )_

**طریق سوم**؛ ،،عن ضمرة عن سفیان الثوری عن عبدالله بن دینار عن ابن عمر...اه،، ددې تخریج حافظ بیهقی او طبرانی کړی دی.

**سوال**؛ طبرانی فرمائیلی دی چه په ذکر شوی الفاظو سره ددې حدیث په روایت کې ضمره متفرد دې بیهقی فرمائی چه ددې راوی ته وهم شوی دې او دا د ضمره نه محمد بن ابراهیم بن یوسف فریابی د حفاظو د جماعت پشان په طریق د صواب روایت کړی دی؟

**جواب**؛ د امام محمد رحمه الله بیان دې چه ددې راوی ضمره بن ربیعه پخپله زمانه کې د فلسطین په خلګو کې مشهور فقیه وو چه دده مثل په شام کې هیڅ څوک نه وو. ابن سعد فرمائی چه دا سړې ثقه او مامون وو او ملته دده پشان بل څوک نه وو او بنکاره ده که داسې سړې د یو حدیث په روایت کې متفرد وی نو د هغه تفرد مضر نشی کیدې.

**طریق چهارم**؛ ،، عن محمد بن زیاد ثنا یحي بن سلیم الطائفی عن إسماعیل بن أمیه عن نافع عن إبن عمر...اه،، ددې تخریج حافظ طبرانی په معجم اوسط کې او حافظ بیهقی په سنن کې کړی دې بیا د معجم اوسط په نسخو کې محمد بن زیاد دې او هم دا صحیح دې په حاشیه د سنن کبری کې هم په خط د حافظ ابوالقاسم بن عساکر هم دا مکتوب موجود دې. «إنما هو محمد بن زیاد بن عبدالله الزیادی البصری» نودا د حافظ ابن خزیمه شیخ دې ابوحسان بن عثمان زیاد د سره نه دې لکه څنګه چې بیهقی په سنن کې وئیلی دی.

**سوال**؛ ددې د راوی یحي بن سلیم په اړه کې بیهقی وئیلی دی چه دا سئ الحفظ (کمزوری حفظ والا) او کثیر الخطاء دې؟

**جواب**؛ د یحي بن سلیم متابع محمد بن مسلم طائفی موجود دې چه دده حدیث حاکم په مستدرک کې روایت کړې دې.

**سوال**؛ دارقطنی په العلل کې فرمائیلی دی چه په اسناد کې د اسماعیل بن امیه ذکر کول د محمد بن زیاد وهم دې څکه چې یعقوب بن کاسب ددې خلاف داسې روایت کړې دې. «عن یحي بن سلیم عن عبیدالله بن عمر عن نافع عن إبن عمر رضي الله عنهما»

**جواب**؛ دا هیڅ د وهم خبره نه ده څکه ممکن ده چه په دې روایت کې د یحي بن سلیم دوې (دوه) شیوخ وی (اسماعیل بن امیه او عبیدالله بن عمر) او یحي دا حدیث ددوی دواړو نه آوریدلې وی.

**سوال**؛ علامه زیلعی لیکلی دی چه ما د حدیث په هیڅ طریق کې لفظ د،، ولا یورث،، نه دې کتلې؟

**جواب**؛ دارقطنی چې په کتابت العلل کې کوم روایت د،، ایوب بن سلیمان الأعور عن عبدالعزیز بن مسلم القسملی عن عبدالله بن دینار عن ابن عمر،، ذکرکړې دې هغې کې دا موجود دی. «فإنه قال لا یباع الولاء ولا یوهب ولا یورث» او په روایت د،، محمد بن اسماعیل الفارسی عن الثوری عن عبدالله بن دینار عن ابن عمر،، هم دغه ډول دې دا واړه تفصیل حدیث د ابن عمر رضي الله عنهما سره متعلق دې.

د حدیث ابن ابی اوفی رضي الله عنه تخریج (په قول د حافظ ابن حجر) ابوجعفر ابن جریر طبری رحمه الله په تهذیب الآثار کې، حافظ ابو نعیم په معرفة الصحابه کې، او طبرانی په معجم کبیر کې، (او په قول د امام زیلعی رحمه الله ابن عدی په الکامل کې) کړې دې. «قال رسول الله ﷺ: الولاء لحمة کلحمة النسب لا یباع ولا یوهب» حافظ ابن حجر په تلخیص کې ددې حدیث په په اړه کې د،، وظاهر اسناده الصحة،، وئیلو نه روسته دا هم فرمائیلی دی چه «یعکر علی البیهقی حیث قال عقب حدیث أبي یوسف یروی بأسانید اخر کلها ضعیفة»

د ابوهریره رضي الله عنه د حدیث تخریج ابن عدی رحمه الله په الکامل کې کړې دې خو ددې راوی یحي بن ابی انیسه متروک دې ابن عدی د امام بخاری، نسائی، امام احمد، ابن المدینی او د ابن معین نه ددې تضعیف نقل کړې دې او فرمائیلی ئې دی چه دده رور زید بن ابی انیسه ثقه دې.

د علي رضي الله عنه حدیث حافظ بیهقی رحمه الله په سنن کې د باب په آخر کې ذکر کړې دې او هیڅ علت ئې نه دې ذکرکړې او نه شیخ ابن الترکمانی ،،صاحب د الجوهر النقی،، څه علت ذکرکړې دې.



## د مړک یا د طلاق معتده آزادیدل، او دوې (دوه) کاله روسته د پیدا شوی بچی د ولاء حکم

بِخِلَافِ مَا إِذَا أُعْتِقَتِ الْمُعْتَدَّةُ عَنْ مَوْتٍ أَوْ طَلَاقٍ په خلاف ددې کله چې د مرګ یا د طلاق عدت والا آزاده کړې شوه. فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ مِنْ وَقْتِ الْمَوْتِ أَوِ الطَّلَاقِ بیا هغې د مرګ یا د طلاق د وخت نه دوې (دوه) کاله نه کمه (موده) کې بچې راوړو. حَيْثُ يَكُونُ الْوَلَدُ مَوْلًى لِمَوَالِي الْأُمِّ وَإِنْ أُعْتِقَ الْأَبُ نودا بچې به د دمور د موالی مولا وی. اګرچه پلار به آزادولې شی. لِتَعَذُّرِ إِضَافَةِ الْعُلُوقِ إِلَى مَا بَعْدَ الْمَوْتِ وَالطَّلَاقِ الْبَائِنِ لِحُرْمَةِ الْوَطْءِ څکه چې د علوق (د نطفې قائمیدو) اضافت د مرګ یا طلاق بائن نه روسته اړخ ته متعذر دې د وطی د حرمت په وجه. وَبَعْدَ الطَّلَاقِ الرَّجْعِيِّ لِمَا أَنَّهُ يَصِيرُ مُرَاجِعًا بِالشَّكِّ او د طلاق رجعی نه روسته اړخ ته هم متعذر دې چه هغه په شك سره رجعت کونکې جوړیږی. فَأُسْنِدَ إِلَى حَالَةِ النِّكَاحِ په دې وجه د نکاح حالت اړخ ته مستند شو. فَكَانَ الْوَلَدُ مَوْجُودًا عِنْدَ الْإِعْتَاقِ نو د آزادولو په وخت به بچې موجود وی. فَعَتَقَ مَقْصُودًا نو هغه به مقصود وی او آزاد به وی.

**تشریح**: په نهایه او معراج الدرایه وغیره کې دی چه «بخلاف ما إذا اعتقت..» عبارت د تیرشوی قول «فإذا صار اهلا عاد الولاء إلیه» سره متعلق دې مطلب دادې چه ذکرشوې وینځه د خپلې آزادئ نه شپږ میاشتې نه په زیاته موده کې بچې راوړی بیا پلار آزاد کړې شی نو هغه به د خپل بچې ولاء د مور د موالی نه خپل موالی اړخ ته راکاږی په خلاف د هغه قول کوم چې په دې قول کې ذکر دې چه په دې کې هغه د خپل بچی ولاء خپل موالی اړخ ته نشی راخکلې اګرچه د بچی زیږیدل د مور د آزادئ نه شپږ میاشتو نه په زیات باندې وی بلکه د بچی ولاء به د مور د موالی لپاره وی اګرچه پلار آزاد کړې شی اوس مخکې د خلافی مسئلې صورت باندې پوهه شی:

مسئله داده چه یوه وینځه د یو مکاتب بنځه وه مکاتب د بدل کتابت ادا کاوه لائق مال پریخودو او مړ شو او وینځه آزاده کړې شوه یا هغې د طلاق عدت تیرولو) که طلاق بائن وی او که رجعی وی چه هغه آزاده کړې شوه بیا د مرګ د خت نه یا د طلاق د وخت نه د دوې (دوه) کاله نه په کم کې ددې بچې پیدا شو نودا بچې به د خپلې مور د موالی مولا وی اګرچه پلار آزاد کړې شی وجه داده چه (دمرګ په صورت کې) د نطفې د قرار اضافت دمرګ نه روسته اړخ ته متعذر دې یعنی د مرګ نه روسته د نطفې قائمیدلو حکم نشی کیدې څکه چې دا د مړی نه محال (او ناممکن) دې او (د طلاق بائن په صورت کې) د نطفې د قرار اضافت د طلاق بائن نه روسته اړخ ته متعذر دې څکه چې د طلاق بائن نه روسته وطی حرام ده او د طلاق رجعی نه روسته هم د نطفې قائمیدلو حکم متعذر دې څکه چې هغه شك سره رجعت کونکې کیږی (څکه که هغه د عدت د زمانې په وطی باندې محمول کړې شی نو رجعت کونکې کیږی او که د طلاق نه وړاندې باندې محمول کړې شی نو رجعت کونکې نه جوړیږی) حالانکه شك سره د رجعت ثبوت نه کیږی نو خامخا به ددې نسبت دنکاح حالت اړخ ته کیږی نو د آزادولو په وخت بچې موجود شو نو ددې اعتاق به بالقصد واقع کیږی او هرکله چې اعتاق بالقصد واقع شو نو ولاء د مور د موالی نه نه منتقل کیږی.

**فائده**؛ علامه مرغینانی رحمه الله په مرګ او طلاق کې طلاق څکه مطلق ساتلې دې چه دا بائن او رجعی دواړو ته ګډ شی حاکم شهید هم دغه ډول مطلق ساتلې دې البته امام طحاوی رحمه الله پخپل مختصر کې دا بائن سره مقید کړې دې او شیخ اسبیجابی رحمه الله پخپله شرح کې هم ددوی اتباع کړې ده.

## د وینځې او ملاعنه ښځې د بچو په منځ کښې فرق

(وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ) په جامع صغیر کې دی. وَإِذَا تَزَوَّجَتْ مُعْتَقَةٌ بِعَبْدٍ که نکاح اوکړله یو آزاد دغلام سره. فَوَلَدَتْ أَوْلَادًا او اولاد پیدا شو. فَجَنَى الْأَوْلَادُ بیا اولاد جرم اوکړو. فَعَقْلُهُمْ عَلَى مَوَالِي الْأُمِّ نو ددې دیت په موالی د مور باندې دې. لِأَنَّهُمْ عَتَقُوا تَبَعًا لِأُمِّهِمْ څکه چې اولاد د خپلې مور په تبعیت کې آزاد شوې دې. وَلَا عَاقِلَةَ لِأَبِيهِمْ وَلَا مَوْلًى او

ددوی د پلار عاقله یا موالی نشته. فَالْحِقُوا بِمَوَالِي الْأُمِّ ضَرُورَةً كَمَا فِي وَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ عَلَى مَا ذَكَرْنَا نو په دې ارتیا سره د مور موالی سره ملاؤ کړې شو. لکه څنګه چې په بچی د ملاعنه کې کیږي. (فَإِنْ أَعْتَقَ الْأَبُ) بیا که پلار آزاد کړو. (جَرَّ وَلَاءَ الْأَوْلَادِ إِلَى نَفْسِهِ) نو هغه به د اولاد ولاء خپل خان اړخ ته راکاږي. لِمَا بَيَّنَّا

**تشریح:** د جامع صغیر عبارت چونکه د دیت په بیان باندې مشتمل دې. او په دې کې د ذکرشوې وینځې د بچي اود ملاعنه ښځې د بچي په منځ کې توپیر هم ذکر دې. په دې وجه د جامع صغیر عبارت ذکرکوی. جامع صغیر کې دی. که د یو قوم آزاده شوې وینځې د بل قوم غلام سره نکاح اوکړله. اود هغې اولاد اوشو. بیا اولاد څوك خطاء قتل کړل. نو دیت به د مور په موالی وی. ځکه چې دا اولاد خود خپلې مور په اتباع کې آزاد شوې دې. او ددوی د پلار هیڅ عاقله قوم یا موالی نشته. نو په دې اړتیا سره دا اولاد د خپلې مور موالی سره ملحق شو. لکه څنګه چې د ملاعنه په بچی کې کیږي. کوم چې وړاندې تیر شو. «ای ق قوله کولد الملاعنة ینسب الی قوم الام ضرورة» بیا که پلار (یعنی هغه غلام کوم چې د معتقه مذکوره میړه دې. هغه هم آزاد کړې شو. نو هغه به د اولاد ولاء خپل خان اړخ ته راکاږي. لکه څنګه چې وړاندې ذکرشو. چه د آزادیدو په وخت پلار کې لیاقت نشته. او دلته د آزادئ نه روسته په ده کې لیاقت شته دې.

(وَلَا يَرْجِعُونَ عَلَى عَاقِلَةِ الْأَبِ بِمَا عَقَلُوا) او موالی دمور چې کوم دیت ورکړې دې. هغه د پلار د عاقله نه نشی اخستلې. لِأَنَّهُمْ حِينَ عَقَلُوهُ كَانَ الْوَلَاءُ ثَابِتًا لَهُمْ، ځکه چې کله هغوی دیت ادا کړې وو. هغه وخت ولاء هغوی لپاره ثابت وو. وَإِنَّمَا يَثْبُتُ لِلْأَبِ مَقْصُودًا او پلار لپاره به خو مقصود وی. او ثابت به وی. لِأَنَّ سَبَبَهُ مَقْصُودٌ وَهُوَ الْعِتْقُ، ځکه چې ددې سبب یعنی آزادی مقصود ده. بِخِلَافِ وَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ په خلاف د ملاعنه د بچی، إِذَا عَقَلَ عَنْهُ قَوْمُ الْأُمِّ کله چې دده د اړخه د مور قوم دیت ورکړو. ثُمَّ أَكْذَبَ الْمُلَاعِنُ نَفْسَهُ بیا ملاعن خپل خان دروغجن اوګرخولو. حَيْثُ يَرْجِعُونَ عَلَيْهِ، نو هغوی به د مور په موالی باندې رجوع کوی. لِأَنَّ النَّسَبَ هُنَالِكَ يَثْبُتُ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْعُلُوقِ ځکه چې دلته به نسب د نطفې قائمیدلو وخت اړخ ته منسوب وی. او ثابت به وی. وَكَانُوا مَجْبُورِينَ عَلَى ذَلِكَ او د مور موالی د دیت په ادا کاوه مجبور وو. فَيَرْجِعُونَ نو رجوع به کوی.

**تشریح:** بیا چې موالی په دیت کې کوم څه ادا کړی دی. هغه د پلار موالی نه نشی اخستلې. ځکه چې په کومه زمانه کې هغوی د عاقله په حیثیت سره دیت ادا کړې وو. هغه وخت هغوی لپاره ولاء ثابت وو. او روسته لپاره به اوس ثابتیږی. کله چې پلار آزاد کړې شو. ځکه چې ددې سبب یعنی ازادی خو په دغه وخت ثابت ده. په خلاف د ملاعنه د بچی، که د ښځې قوم د عاقله په حیثیت سره دیت ورکړو. بیا ملاعن میړه د خپل خان تکذیب اوکړو. نو د موالی چا چې د عاقله په حیثیت سره دیت ادا کړې دې. هغوی به د پلار موالی نه واپس اخلی. ځکه چې دلته به د بچی نسب هغه وخت نه ثابت وی. د کوم وخت نه چې نطفه قائمه شوې ده. او موالی د مور چې کوم دیت ادا کړې وو. هغه د مجبورئ په وجه وو. نو هغوی به د پلار موالی نه واپس اخلی.

### د عرب آزادې وینځې سره د عجمی د نکاح نه روسته د ولاء حکم

قَالَ (وَمَنْ تَزَوَّجَ مِنَ الْعَجَمِ بِمُعْتَقَةٍ مِنَ الْعَرَبِ) که یو عجمی د عرب آزادې ښځې سره نکاح اوکړله. (فَوَلَدَتْ لَهُ أَوْلَادًا) چې د هغې نه اولاد پیدا شو. فَوَلَاءُ أَوْلَادِهَا لِمَوَالِيهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود هغې د اولاد ولاء به د هغې (یعنی دمور) د موالی لپاره وی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللَّهُ (¹) علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی چه هم دا د امام محمد رحمه الله قول دې. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: امام ابویوسف رحمه الله فرمائی. حُكْمُهُ حُكْمُ أَبِيهِ، چې ددې

¹) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الدرالمنتقى (٣١١٤) ومجمع الأنهر(١٨١٤) والهندية (٢٨١٥) نقلاً عن [illegible] الراجح (٢٤٨١٢)_



حکم ددې د پلار حکم دې. لِأَنَّ النَّسَبَ إِلَى الْأَبِ كَمَا إِذَا كَانَ الْأَبُ عَرَبِيًّا، ځکه چې نسب پلار اړخ ته کیږي. لکه مثلاً که پلار عربی وی. بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْأَبُ عَبْدًا په خلاف ددې کله چې پلار غلام وی. لِأَنَّهُ هَالِكٌ مَعْنًى. نو هغه معنی مړ دې.

**تشریح:** یو حر الاصل عجمی د یوې ښځې سره واده اوکړو. چه هغه د چا آزاده کړې شوې وه. (که هغه عجمی ښځه وی. او که عربیه وی. او ددې آزادونکې څوك عربی وی. او که عجمی وی). د هغې نه اولاد اوشو. نود اولاد ولاء به هم ددې معتقه ښځې موالی ته ملاویږي. اګرچه ددې عجمی میړه د یو کس سره عقد موالات کړې وی. دا حکم د طرفینو رحمهما الله په نیز دې. د امام ابویوسف رحمه الله په نیز ددې اولاد حکم ددوی د پلار پشان دې. یعنی دوی به آزاد وی. نو په دوی به ولاء عتاقه نه وی. بلکه دده مال به دده د ذوی الارحام لپاره وراثت وی. ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی. ځکه چې ولاء په مرتبه د نسب دې. او نسب د پلار اړخ ته کیږي. که پلار عربی وی. نود اولاد حکم به هم دغه وی. په خلاف ددې کله چې پلار غلام وی. چه هغه په مرتبه د مړي دې. په دې وجه د اولاد ولاء د هغوی د مور موالی ته ملاویږي.

وَلَهُمَا أَنَّ وَلَاءَ الْعَتَاقَةِ قَوِيٌّ مُعْتَبَرٌ فِي حَقِّ الْأَحْكَامِ د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. چه ولاء عتاقه قوی او د احکامو په حق کې معتبر دې. حَتَّى اعْتُبِرَتِ الْكَفَاءَةُ فِيهِ، تردې چې په دې کې کفو کیدل معتبر وی. وَالنَّسَبُ فِي حَقِّ الْعَجَمِ ضَعِيفٌ اود عجمیانو په حق کې نسب ضعیف دې. فَإِنَّهُمْ ضَيَّعُوا أَنْسَابَهُمْ ځکه چې هغوی خپل نسب ضائع کړو. وَلِهَذَا لَمْ تُعْتَبَرِ الْكَفَاءَةُ فِيمَا بَيْنَهُمْ بِالنَّسَبِ، په دې وجه په دې کې د نسب د کفاءت اعتبار نه کیږي. وَالْقَوِيُّ لَا يُعَارِضُهُ الضَّعِيفُ، او ضعیف د قوی معارض نه وی.

**تشریح:** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې. چه ولاء عتاقه قوی دې. اود احکامو په حق کې معتبر دې. چه په ولاء عتاقه کې د کفاءت اعتبار کیږي. تردې چې معتق د عجم، د عربو د معتق کفو نشی کیدې. «ولهذا یجوز إبطال حرمة العجم بالإسترقاق» او ولاء عتاقه په ذوی الارحام باندې مقدم کولې شي. او د ولاء عتاقه واقع کیدلو نه روسته قابل د فسخ نه جوړیږي. په خلاف د عجمیانو، چه ددوی په حق کې نسب ضعیف دې. ځکه چې هغوی خپل نسب برباد کړې دې. په دې وجه هغوی کې د نسب په لحاظ سره کفو کیدل معتبر نه وی. ځکه چې هغوی نسب سره هیڅ فخر نه کوی. د هغوی افتخار خو د اسلام نه وړاندې دنیا تعمیر کول او د اسلام نه روسته دین سره دې. حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه هم دې اړخ ته اشاره کړې ده. کله چې د هغوی په اړه کې اوونیلی شو.،، سلمان إبن من؟ ،، نو هغوی اوفرمائیل.،، سلمان إبن الإسلام،،

وقال ~ أبي الإسلام لا أب لي سواه ۞ إذا افتخروا بقيس أو تميم

بهرحال د عجمیانو په حق کې نسب کمزورې دې. او قوی سره د کمزورې معارضه جائز نه ده.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْأَبُ عَرَبِيًّا په خلاف ددې کله چې پلار عربی وی. لِأَنَّ أَنْسَابَ الْعَرَبِ قَوِيَّةٌ مُعْتَبَرَةٌ فِي حُكْمِ الْكَفَاءَةِ وَالْعَقْلِ، ځکه چې د عربو نسب قوی دې. اود کفو او عاقله په حق کې معتبر دې. كَمَا أَنَّ تَنَاصُرَهُمْ بِهَا ځکه چې ددوی خپل منځ کې نصرت ددې څخه دې. فَأَغْنَتْ عَنِ الْوَلَاءِ. نو هغه د ولاء نه بې نیازه کړو. قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. الْخِلَافُ فِي مُطْلَقِ الْمُعْتَقَةِ چې دا اختلاف د مطلق معتقې په اړه کې دې. وَالْوَضْعُ فِي مُعْتَقَةِ الْعَرَبِ وَقَعَ اتِّفَاقًا اود عرب د معتقه په اړه کې د مسئلې وضع صرف اتفاقی طور باندې ده.

**تشریح:** د امام ابویوسف رحمه الله د قیاس «كما إذا كان الأب عربيا» څواب دې. چه په خلاف د هغه صورت کله چې پلار عربی وی. چه د عربو نسبونه قوی او په کفو او عاقله کیدلو کې معتبر دی. ځکه چې دوی کې خپل منځ کې نصرت په نسب سره جاری کیږي. نو ددوی دولاء نه بې حاجته شو.

(وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ) جامع صغیر کې دی. (نَبَطِيٌّ كَافِرٌ تَزَوَّجَ بِمُعْتَقَةٍ كَافِرَةٍ) چې یو نبطی کافر د یو کس معتقه (آزادې وینځې) سره نکاح اوکړله. (ثُمَّ أَسْلَمَ النَّبَطِيُّ) بیا نبطی مسلمان شو. (وَوَالَى رَجُلًا) و هغه د یو کس سره

موالات اوکړو. **فَوَلَدَتْ أَوْلَادًا** ددې نه روسته د مذکوره ښځې نه اولاد اوشو. **قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٌ:** نو طرفين رحمهما الله فرمائي. **مَوَالِيهِمْ مَوَالِي أُمِّهِمْ** چې د اولاد موالي به ددوی د مور موالي وي. **وَقَالَ أَبُويُوسُفَ:** وامام ابويوسف رحمه الله فرمائي. **مَوَالِيهِمْ مَوَالِي أَبِيهِمْ** چې ددوی موالي به د پلار موالي وي. **لِأَنَّ الْوَلَاءَ وَإِنْ كَانَ أَضْعَفَ فَهُوَ مِنْ جَانِبِ الْأَبِ** چې ولاء اګرچه کمزور دې. البته د پلار د اړخه دې. **فَصَارَ كَالْمَوْلُودِ بَيْنَ وَاحِدٍ مِنَ الْمَوَالِي وَبَيْنَ الْعَرَبِيَّةِ.** نو يو آزاد عجمي او يوې آزادې عربيې نه د پيدا شوی اولاد پشان شو.

**تشريح:** امام محمد رحمه الله په جامع صغير کې معتقه مطلق ذکرکړې دې. اود جامع صغير عبارت ،، ولاء موالات،، باندې هم مشتمل دې. په دې وجه علامه مرغيناني رحمه الله دجامع صغير عبارت ذکر کوی. فرمايي. جامع صغير کې دی چه يو نبطي ( رزيل) کافر د يو قوم آزادې شوې ښځې سره نکاح اوکړله. بيا نبطي مسلمان شو. او هغه د چا سره موالات اوکړو. ددې نه روسته د هغه د مذکوره ښځې ( چې هغه نصرانيه يا يهوديه ده) نه اولاد پيدا شو. نود طرفينو رحمهما الله په نيز به ددې اولاد موالي ددوی د مور موالي وي. اود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به ددوی موالي د پلار موالي وي. ځکه چې ولاء اګرچه کمزورې دې. البته د پلار د اړخه موجود دې. نو داسې شوه. لکه چې يو آزاد عجمي او د يو عربيه په مينځ کې پيدا شوې اولاد، چې په دې صورت کې نسب بالاتفاق د پلار اړخ ته کيږي. دغه ډول دلته کې هم دی.

**وَلَهُمَا** طرفينو رحمهما الله دليل دادې. **أَنَّ وَلَاءَ الْمُوَالَاةِ أَضْعَفُ حَتَّى يَقْبَلَ الْفَسْخَ،** چې ولاء موالات کمزورې دې. تردې چې هغه فسخ قبلوی. **وَوَلَاءُ الْعَتَاقَةِ لَا يَقْبَلُهُ،** او ولاء عتاقه فسخ نه قبلوی. **وَالضَّعِيفُ لَا يَظْهَرُ فِي مُقَابَلَةِ الْقَوِيِّ،** اود قوی په مقابله کې کمزورې نه ښکاره کيږي. **وَإِنْ كَانَ الْأَبَوَانِ مُعْتَقَيْنِ** اوکه مور او پلار دواړه آزاد کړې شوی وي. **فَالنِّسْبَةُ إِلَى قَوْمِ الْأَبِ** نو نسبت به دپلار قوم اړخ ته کيږي. **لِأَنَّهُمَا اسْتَوَيَا،** ځکه چې آزادئ کې دوی دواړه برابر دی. **وَالتَّرْجِيحُ لِجَانِبِهِ لِشَبَهِهِ بِالنَّسَبِ** اود پلار اړخ ته ترجيح ده. ولاء د نسب مشابه کيدلو په وجه. **أَوْلِأَنَّ النُّصْرَةَ بِهِ أَكْثَرُ** يا په دې وجه د پلار قوم سره نصرت زيات رسيږي.

**تشريح:** د طرفينو رحمهما الله دليل دادې. چه ولاء موالات د ولاء عتاقه په نسبت ضعيف او کمزورې دې. تردې چې هغه فسخ کيداې شي. او ولاء عتاقه نه فسخ کيږي. او دا خبره فيصله شوې ده. چه د قوی په مقابله کې ضعيف نه ښکاره کيږي. او که د مذکوره اولاد مور پلار دواړه آزاد کړې شوی وي. نو نسبت به بالاتفاق د پلار قوم اړخ ته کيږي. ځکه چې آزاديدلو کې دواړه برابر دی. او د پلار اړخ ته ترجيح يا په دې وجه دې. چه ولاء ته نسب سره مشابهت دې. يا ځکه چې د پلار د قوم اړخه نصرت زيات رسيږي.

## په باب د وراثت کښې د معتق حيثيت

**قَالَ: وَوَلَاءُ الْعَتَاقَةِ تَعْصِيبٌ** و ولاء عتاقه يو تعصيب دې. **وَهُوَأَحَقُّ بِالْمِيرَاثِ مِنَ الْعَمَّةِ وَالْخَالَةِ** او آقا زيات حقدار وي. د ميراث د پلار د خور نه او د مور د خور ( يعنی د تروريانو) نه.

**تشريح:** ولاء عتاقه: يو تعصيب دې. چه معتق عصبه جوړه وي. چه پلار په ميراث کې په معتق ( آزادونکې) ذوي الارحام باندې مقدم وي. اود نسبي عصبياتو نه موخر وي. جمهور صحابه او تابعين وغيره هم ددې قائل دی. او هم دا د حضرت علي رضي الله عنه نه نقل دی. بلکه عبدالرزاق د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه نه هم دا روايت کړې دې.

**سوال:** عبدالرزاق په ،، عن الثوری عن منصور عن حصين عن ابراهيم،، د ،، حضرت عمر، حضرت علي، او ابن مسعود رضي الله عنهم،، نه روايت کړې دې چه دې حضراتو به وراثت د ذوي الارحامو ورکولو. د موالي به ئې نه ورکولو؟

**جواب:** په دې اړه کې دواړه قسمه روايات دی. او دواړو کې تطبيق ممکن دې. دغه ډول د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه وغيره نه چې دا نقل دی. چه وراثت به موالي ته ورکولې شو. ذوي الارحام ته به نشو ورکولې. په دې کې د ذوي الارحام نه مراد هغه خلګ دی. کوم چې د ذوي الفرائض و عصبات نه کمتر وي. او حضرت علي،



حضرت عمر، اود حضرت بن مسعود رضي الله عنهم نه چې دا نقل دی. چه دې حضراتو به وراثت ذوي الارحامو ته ورکولو. موالي ته به ئې نه ورکولو. دا په دې محمول دې. چه د ذوي الارحام نه مراد ذوقرابت عصبات دی. «وحينئذ يتفق الأقوال»

بهرحال د جمهورو په نيز حکم هم دادې. چه معتق په ذوي الارحامو باندې مقدم اود نسبي عصبياتو نه موخر وي. نو که يو کس غلام آزاد کړو. او غلام په داسې حالت کې مړ شو. چه د مور خور، او د پلار خور ( يعني تروريانې) ئې پريخودل. نو دده ميراث به آزادونکي ته ملاويږي. دده تروريانو ته به نه ملاويږي.

{**لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِلَّذِي اشْتَرَى عَبْدًا فَأَعْتَقَهُ** ځکه د نبي کريم ﷺ ارشاد دې. د هغه کس اړه کې، چا غلام ئې واخستلو. او آزاد ئې کړو. **هُوَأَخُوكَ وَمَوْلَاكَ،** چې دا ستا رور او آزادونکې دې. **إِنْ شَكَرَكَ** که هغه ستا شکر اوخکلو. **فَهُوَخَيْرٌ لَهُ وَشَرٌّ لَكَ،** نو دا د هغه په حق کې غوره او ستا په حق کې بد دی. **وَإِنْ كَفَرَكَ** او که هغه ستا نا شکري اوکړله. **فَهُوَخَيْرٌ لَكَ وَشَرٌّ لَهُ،** نو دا ستا په حق کې غوره او د هغه په حق کې بدتر دی. **وَلَوْمَاتَ وَلَمْ يَتْرُكْ وَارِثًا** او که دې مړ شو. او هيڅ څوک وارث ئې پرې نخودو. **كُنْتَ أَنْتَ عَصَبَتَهُ**}(۱) نو ته به دهغه عصبه يې.

**تشريح:** دليل هغه روايت دې. چه دهغې تخريج دارمي په مسند کې کړې دې. «أن رجلاً أتى النبي ﷺ برجل فقال: إنى اشتريت هذا فاعتقه فما ترى فيه؟ قال أخوك و مولاك أن شكرك فهو خير له و شرلك و إن كفرك فهو شر له و خير لك قال فما ترى فى ماله؟ قال إن مات ولم يدع وارثاً فلك ماله»، يو سړی يو کس د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر کړو. او هغه عرض اوکړو. چه ما دې اخستې او آزاد کړې دې. نو دده په اړه کې ستاسو څه حکم دې؟ نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. دا ستا ( ديني ) رور دې. او ستا ازاد کړې شوې دې. «قال الله تعالى **فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ**» که دده ( ستا د نيک کار په بدله کې ) ستا شکر اوخکلو. نو دا د هغه په حق کې غوره ده. ( چې شريعت دده لره کوم شي اړخ ته رابللې دې. دې هغه اړخ ته راغلو) قال ﷺ: «من أبدلت إليه نعمته فليشكرها» اوستا په حق کې بد دی. ( ځکه چې تاته ددې څه بدله په دنيا کې ملاؤ شوه. نو هم دومره د آخرت ثواب به دې کم وي ) او که هغه ستا نا شکري اوکړله. نو هغه ستا په حق کې غوره ده. ( ځکه چې ستا د عمل اخروی ثواب ستا لپاره پوره پاته پاتې شو) او دده په حق کې بد تر دی. ( ځکه چې ناشکري ډير ناکاره او قبيح عادت دې. قال ﷺ : «من لم يشكر الناس لم يشكر الله» ( رواه احمد وغيره) هغه عرض اوکړو. دده د مال په اړه کې څه حکم دې؟ نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. که دې مړ شو. او ده هيڅ وارث پرې نخودلو. نو دده مال به تاته ملاويږي ) دا روايت اګرچه مرسل دې. البته د حسن بصري د مراسيلو مطابق صحيح او مقبول دې. او زمونږ په نيز د عمل قابل دې.

{**وَوَرَّثَ ابْنَةَ حَمْزَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَلَى سَبِيلِ الْعُصُوبَةِ** او دوی ﷺ د حمزه رضي الله عنه لور ته د عصبه په طور کيدلو سره ميراث ورکړو. **مَعَ قِيَامِ وَارِثٍ**}(۲) سره ددې چې وارث موجود وو. **وَإِذَا كَانَ عَصَبَةً** نو هرکله چې آزادونکې عصبه اوګرځولې شو. **تَقَدَّمَ عَلَى ذَوِي الْأَرْحَامِ** نو هغه به ذوي الارحام باندې وړاندې وي. **وَهُوَالْمَرْوِيُّ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ** د حضرت علي رضي الله عنه نه هم دا نقل دی.

**تشريح:** دوهم دليل دادې. چه نبي کريم ﷺ د حضرت حمزه رضي الله عنه لور ته د هغې د آزاد شوی غلام نه د عصبه کيدلو په طور باندې ميراث واخستلو. چه ددې آزادې شوې يوه لور موجود وه. ( دا حديث وړاندې تيرشوې دې). نو هرکله چې آزادونکې عصبه مقرر کړې شو. نو په ذوي الارحام باندې به مقدم وي.

(**فَإِنْ كَانَ لِلْمُعْتَقِ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ** بيا که د ازاد شوې څوک نسبي عصبه وي. **فَهُوَأَوْلَى مِنَ الْمُعْتِقِ**) نو هغه به د آزادونکی نه غوره وي. **لِأَنَّ الْمُعْتِقَ آخِرُ الْعَصَبَاتِ،** ځکه چې هغه آخرى عصبه دې. **وَهَذَا لِأَنَّ قَوْلَهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ**

) من حديث الحسن رضي الله عنه أخرجه الدارمي فى الفرائض باب ٣١)_

) تقدم تخريجه من قريب)_

وَالسَّلَامُ{وَلَمْ يَتْرُكْ وَارِثًا} قَالُوا:او دا خکه چې د نبی کریمﷺ ارشاد «ولم يترك وارثاً» په اړه کې عالمانو ویلي دي. اَلْمُرَادُ مِنْهُ وَارِثٌ چې ددې نه مراد وارث دې. هُوَ عَصَبَةٌ بِدَلِيلِ الْحَدِيثِ الثَّانِي چې هغه عصبه وی.په دلیل د حدیث ثاني ، فَتَأَخَّرَ عَنِ الْعَصَبَةِ دُونَ ذَوِي الْأَرْحَامِ نو معتق وارث به د عصبه نه مؤخر وی.د ذوی الارحام څخه به ( مؤخر) نه وی.

تشریح: او که معتق ( آزاد شوی ) خوني ، رور یا څوك نسبی عصبه پریخودو.نو دا عصبه به په معتق باندې مقدم وی.خکه چې معتق خو بالکل آخری عصبه دې.په دې دلیل چې مذکوره حدیث کې نبی کریمﷺ داسې اوفرمائیل. «ولم يترك وارثاً» او ددې په اړه کې د عالمانو رائې ده.چه د وارث نه مراد هغه وارث دې.چه هغه عصبه وی.مطلب داشو.چه ده څوك عصبه نه وی پرې خودې.نو معتق به عصبه وی.په دلیل د حدیث د حضرت حمزه‌ رضی الله عنه د لور چې تیر شوی حدیث کې نبی کریمﷺ عصبه په طور هغې ته میراث ورکړو.معلومه شوه.چه معتق د عصبه نه مؤخر دې.او په ذوی الارحام مقدم دې.

قَالَ (فَإِنْ كَانَ لِلْمُعْتَقِ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ فَهُوَ أَوْلَى) لِمَا ذَكَرْنَا (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ) او که دده نسبی عصبه نه وی.(فَمِيرَاثُهُ لِلْمُعْتِقِ) نو دده میراث به معتق لپاره وی او که د آزاد شوی څوك نسبی عصبه وی.نو هغه به د آزادونکی نه اولی وی. تَأْوِيلُهُ إِذَا لَمْ يَكُنْ هُنَاكَ صَاحِبُ فَرْضٍ ذُو حَالٍ ، ددې تاویل دادې.چه هلته کې څوك داسې صاحب فرض ( عصبه) هم نه وی.چه هغه ذوحال وی. أَمَّا إِذَا كَانَ او که څوك داسې صاحب فرض وی. فَلَهُ الْبَاقِي بَعْدَ فَرْضِهِ نو دهغه د فرض نه روسته به پاته هم دده لپاره وی. لِأَنَّهُ عَصَبَةٌ خکه چې هغه عصبه دې. عَلَى مَا رَوَيْنَا، وَهَذَا لِأَنَّ الْعَصَبَةَ مَنْ يَكُونُ التَّنَاصُرُ بِهِ لِبَيْتِ النِّسْبَةِ ددې وجه داده.چه عصبه هغه وی.چه هغوی سره د قبیلې په وجه خپل منځ کې نصرت کیږی. وَبِالْمَوَالِي الِانْتِصَارُ او د موالی په ذات سره انتصار کیږی. عَلَى مَا مَرَّ وَالْعَصَبَةُ تَأْخُذُ مَا بَقِيَ او عصبه پاته مانده واړه اخلی.

تشریح: شارحینو ددې جملې دوې (دوه) مطلبه ذکرکړی دی.① یو دا چې هلته کې داسې صاحب فرض نه وی.چه د هغه حق دوې (دوه) قسمه دې.لکه پلار او نیکه، چې ددوی حال د فرض نه علاوه عصوبت هم دې.یعنی دا حق د فرض اخستلو نه روسته پاته د عصوبت په طور اخلی.که داسې صاحب فرض وی.نو هغه د خپل فرض نه روسته پاته هم اخلی.خکه چې هغه عصبه دې.② دوهم داچه داسې صاحب فرض نه وی.چه د هغه صرف یو حالت دې.لکه انجلی که داسې صاحب فرض وی.نو دهغې د فرض وراثت نه روسته چې کوم پاته شی.هغه به معتق ته ملاویږی.صاحب د نهایه رحمه الله دا دوهم تاویل زیات راجح منلې دې.خکه چې علامه مرغینانی رحمه الله د «فله الباقی بعد فرضه» تعلیل کې ویلی دی.چه «لأنه عصبته على ما روينا».

## د ښځو لپاره ولاء شته او کنه نشته؟

(فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى) که د آقا انتقال اوشو. (ثُمَّ مَاتَ الْمُعْتَقُ) بیا معتق مړشو. (فَمِيرَاثُهُ لِبَنِي الْمَوْلَى دُونَ بَنَاتِهِ) نو دده میراث به د آقا ځامنو ته ملاویږی.د هغه جینکو ته به نه ملاویږی. وَلَيْسَ لِلنِّسَاءِ مِنَ الْوَلَاءِ إِلَّا مَا أَعْتَقْنَ خکه چې ښځو لپاره په ولاء کې هیڅ نشته.مګر هغه کوم چې دوی آزاد کړل. أَوْ أَعْتَقَ مَنْ أَعْتَقْنَ یا ددوی آزاد کړې شوو آزاد کړل. أَوْ كَاتَبْنَ یا کوم چې دوی مکاتب کړل. أَوْ كَاتَبَ مَنْ كَاتَبْنَ یا ددوی مکاتب شوو مکاتب کړل.

تشریح: که وړاندې مولا ( معتق) مړشو.بیا معتق ( آزادشوې) هم مړشو.چه دهغه څوك نسبی عصبه نشته.نو د معتق میراث به د معتق د اړخه نارینه اولاد ته ملاویږی.جینکو ته به نه ملاویږی.خکه چې په سنن بیهقی کې د حضرت علی ، حضرت ابن مسعود ،او د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه نه نقل دی. «انهم كانو يجعلون الولاء لكبير من العصبة ولا يورثوا النساء من الولاء إلا ما اعتقن او اعتق من اعتقن» او ابن شیبه په مصنف کې د حضرت حسن بصری ، عمربن عبدالعزیز، ابن سیرین، ابن المسیب، عطاء، او ابراهیم نخعی رحمهم الله نه هم ددې په مثل روایت کړې



دې.

فائده: که د معتق صرف نجوني (جینکۍ) وی.نو د ظاهرالروایة موافق به جینکو ته میراث نه ملاویږی.بلکه میراث به بیت المال کې داخلولې شی.خو د بعضو مشائخو فتوی په دې ده.چه د معتق میراث به جینکو ته ورکولې شی.خکه چې د بیت المال انتظام نشته.تردې که څوك سرې مړشی.او د رضاعی خوی یا لور نه علاوه هیڅ څوك وارث نه وی.نو ددې فتوی هم داده.چه دده میراث به هم دې رضاعی ته ورکولې شی.( ذخیره

بِهَذَا اللَّفْظِ وَرَدَ الْحَدِيثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په دې الفاظو د نبی کریمﷺ نه حدیث نقل دې. وَفِي آخِرِهِ او ددې په آخر کې دی. {أَوْ جَرَّ وَلَاءَ مُعْتَقِهِنَّ}(۱) یا ددوی آزاد شوی چې ددې ولاء نې راخکله. وَصُورَةُ الْجَرِّ قَدَّمْنَاهَا، او د ولاء دجزء په صورت کې موږ وړاندې بیان کړل.

تشریح: یعنی د روایت په آخر کې دا هم دی.،، اوجر ولاء معتقهن،، د جر ولاء مسئله وړاندې تیره شوې ده.دلته د معتق نساء د جر ولاء صورت دادې.چه د یوې ښځې غلام ددې په اجازت سره د بل یو قوم ښځې سره نکاح اوکړله.او د هغې نه نې اولاد اوشو.نو د اولاد ولاء به د مور موالی لپاره وی.اوس که دا سیده ښځه دا غلام آزاد کړی.نو غلام به د اولاد ولاء خپل اړخ ته راکاږی.اودا ښځه به هغه خپل اړخ ته راکاږی.او د جر ولاء معتق المعتق صورت دادې.چه یوې ښځې غلام واخستلو.او آزاد نې کړو.بیا دې آزاد شوی غلام یو غلام واخستلو.او دې دوهم غلام د یو قوم آزادې ښځې سره نکاح اوکړله.او هغې نه نې اولاد اوشو.نو د اولاد ولاء به د مور موالی لپاره وی.اوس که آزاد شوې غلام دا دوهم غلام آزاد کړی.نو دا غلام به د خپل اولاد ولاء راکاږی.بیا به دا ولاء ړومبې معتق خپل اړخ ته راکاږی.او دده ولاء به دا ښځه خپل اړخ ته راکاږی.

فائده: لکه څنګه چې پلار د خپل خوی ولاء راکاږی.دغه ډول نیکه د خپل نوسی ولاء راکاږی او که نه؟ نو حکم په کافی کې د امام شعبی رحمه الله قول ذکرکړې دې.چه نیکه هم راکاږی.قاضی شریح، سفیان ثوری ،امام مالك، اهل مدینه، اوزاعی ، ابن ابی لیلی ، او ابن المبارك هم ددې قائل دی.خو زموږ د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نیز نیکه د نوسی ولاء نشی راخکلې.او نه نوسې د خپل نیکه د اسلام په اتباع کې مسلمان کیدای شی.د امام زفر رحمه الله په نیز، که پلار ژوندې وی.نو نیکه ولاء نشی راخکلې.او که پلار مړ شوې وی.نو راکاږی.

وَلِأَنَّ ثُبُوتَ الْمَالِكِيَّةِ وَالْقُوَّةِ فِي الْعِتْقِ مِنْ جِهَتِهَا او خکه چې په آزاد شوی کې د ملکیت او قوت ثبوت د آزادونکې ښځې د اړخه کیږی. فَيُنْسَبُ بِالْوَلَاءِ إِلَيْهَا نو ولاء به هم دې اړخ ته منصوب کولې شی. وَيُنْسَبُ إِلَيْهَا مَنْ يُنْسَبُ إِلَى مَوْلَاهَا، او کوم چې ددې مولا اړخ ته منسوب دې.هغه به هم دې ښځې اړخ ته منسوب کولې شی. بِخِلَافِ النَّسَبِ په خلاف د نسب، لِأَنَّ سَبَبَ النِّسْبَةِ فِيهِ الْفِرَاشُ، چې په دې کې د نسب سبب فراش دې. وَصَاحِبُ الْفِرَاشِ إِنَّمَا هُوَ الزَّوْجُ، او صاحب د فرش میړه وی. وَالْمَرْأَةُ مَمْلُوكَةٌ لَا مَالِكَةٌ، او ښځه دده مملوکه ده.مالکه نه ده.

تشریح: د معتص صرف نارینه اولاد ته د میراث ملاویدلو دوهم دلیل دادې.چه آزاد شوی کې د مالکیت او قوت ثبوت د معتقه ښځې د اړخه کیږی.نو په ولاء کې به دا معتق هم دې ښځې اړخ ته منسوب کیږی.او معتق چې څوك آزاد کړی وی.هغه به هم دې اړخ ته منسوب وی.خکه چې معتق ثانی خپل معتق اړخ ته منسوب دې.او دده معتق پخپله دې ښځې اړخ ته منسوب دې.نو دوهم به هم دې اړخ ته منسوب وی.په خلاف د نسب، چې په دې کې د بچی نسبت مور اړخ ته نه کیږی.خکه چې نسب کې د نسبت سبب فراش

(١) غریبه الزیلعی رحمه الله ثم قال وأخرجه البیهقی (أی فی السنن الکبری (١٠\٥١٥ رقم ٢١٥١١) عن علی وابن مسعود وزید بن ثابت أنهم کانوا یجعلون الولاء للکبیر من العصبة ولا یورثون النساء من الولاء إلا ما أعتقن او أعتق من أعتقن (نصب الرایة ٤\٣٧٣)

دي.او صاحب د فراش میره وي.

## د معتق د میراث حکم

وَلَيْسَ حُكْمُ مِيرَاثِ الْمُعْتَقِ مَقْصُورًا عَلَى بَنِي الْمَوْلَى اود معتق د میراث حکم د آقا په خامنو باندې مقصود نه دې. بَلْ هُوَ لِعَصَبَتِهِ الْأَقْرَبُ فَالْأَقْرَبُ بلکه کوم چې زیات نژدې عصبه وي.د هغه لپاره دې. لِأَنَّ الْوَلَاءَ لَا يُورَثُ خکه چې ولاء مورث نه وي. وَيَخْلُفُهُ فِيهِ مَنْ تَكُونُ النُّصْرَةُ بِهِ،او په دې کې د مولا خلیفه هغه وي.چه د هغه په ذات سره نصرت وي. حَتَّى لَوْ تَرَكَ الْمَوْلَى أَبًا وَابْنًا تردې که آقا پلار او خوني پریخودو. فَالْوَلَاءُ لِلِابْنِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو ولاء به د خوی لپاره وي.د طرفینو رحمهما الله په نیز. لِأَنَّهُ أَقْرَبُهُمَا عُصُوبَةً،خکه چې هغه عصبه کیدلو کې زیات نژدې دې. وَكَذَلِكَ الْوَلَاءُ لِلْجَدِّ دُونَ الْأَخِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ دغه ډول به ولاء د نیکه لپاره وي.د رور لپاره به نه وي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. لِأَنَّهُ أَقْرَبُ فِي الْعُصُوبَةِ عِنْدَهُ.خکه چې ددوی په نیز نیکه په عصبیت کې زیات نژدې دې. وَكَذَا الْوَلَاءُ لِابْنِ الْمُعْتَقَةِ او هم دغه ډول به ولاء د آزادونکې ښځې د خوی لپاره وي. حَتَّى يَرِثَهُ دُونَ أَخِيهَا لِمَا ذَكَرْنَا او خوني به د معتق وارث وي.د معتقه د رور لپاره به نه وي.

**تشریح:** د معتق د میراث حکم دومره قدرې دې.چه د آقا خامنو ته به ملاویږي.او د آقا په عصباتو کې چې کوم د ټولو نه زیات نژدې وي.هغه ته او که هغه نه وي.یا محروم وي.نو دده نه روسته چې کوم زیات نژدې وي.هغه ته به ملاویږي.خکه چې ولاء په داسې طریقه نه میراث نه حاصلوي.چه د آقا وارثانو ته د مال ښان برخې (حصې) مقرر اورسیږي.بلکه هغه خو د آقا قائم مقام ته د استحقاق په طور ملاویږي.او په دې کې د آقا قائم مقام هغه څوك وي.چه دهغه د ذات نه نفرت وي.تردې که آقا پلار او خوني پریخودل.نود طرفینو رحمهما الله په نیز به ولاء دده خوی لپاره وي.خکه چې عصبه کیدلو کې پلار نه زوی زیات نژدې دې.او که ده نیکه او رور پریخودل.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ولاء د نیکه لپاره وي.خکه چې ددوی په نیز نیکه په عصوبت کې زیات نژدې دې.دغه ډول که معتقه ښځې خوني او رور پریښودلو .بیا د هغه آزاد کړې شوې هم د وارث پریښولو نه بغیر مړ شو.نود معتق وارث به د معتقه خوني وي.د هغه رور به نه وي.

إِلَّا أَنَّ عَقْلَ جِنَايَةِ الْمُعْتَقِ عَلَى أَخِيهَا خود معتق د جرم دیت به ددې ښځې په رور باندې وي. لِأَنَّهُ مِنْ قَوْمِ أَبِيهَا خکه چې رور ددې ښځې د پلار د قوم ځنې دې. وَجِنَايَتُهُ كَجِنَايَتِهَا .اود معتق جرم پخپله ددې ښځې د جرم ښان دې.

**تشریح:** البته که معتق پخپل ژوند کې څه جرم اوکړي.نود جنایت ( جرم) دیت به د معتقه په رور باندې وي.خکه چې هغه ددې ښځې د پلار د قوم ځنې دې.او لکه څنګه که داسې جنایت یواځې ښځې کړې وو.نو عاقله به ددې رور وغیره د پلار قوم وو.نو هم دغه ډول کله چې ددې معتق جرم اوکړو.نو ددې هم دا حکم دې.

(وَلَوْ تَرَكَ الْمَوْلَى ابْنًا وَأَوْلَادَ ابْنٍ آخَرَ) که آقا خپل خوني اود بل خوی نارینه اولاد پریخودو. مَعْنَاهُ بَنِي ابْنٍ آخَرَ دې معنی ده چې اولاد د بل خوی وي (فَمِيرَاثُ الْمُعْتَقِ لِلِابْنِ دُونَ بَنِي الِابْنِ) نود معتق میراث به خوی لپاره وي.نوسو لپاره به نه وي (لِأَنَّ الْوَلَاءَ لِلْكُبْرِ) خکه چې ولاء به ټولو کې د لوئي لپاره وي. هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ عِدَّةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ مِنْهُمْ عُمَرُ وَعَلِيٌّ وَابْنُ مَسْعُودٍ وَغَيْرُهُمْ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ (١) د صحابه کرامو رضي الله عنهم د یو جماعت نه هم دا نقل دی.چه هغوی. کې حضرت علی رضي الله عنه او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وغیره دی. وَمَعْنَاهُ الْقُرْبُ عَلَى مَا قَالُوا،وَالصُّلْبِيُّ أَقْرَبُ اود کبر ( لوئې) نه مراد نیزدیوالې دې.ددې قول په بنا (بنیاد) چې صلبی زیات

(١) ...قدم ذکرهم عن قریب)_



نژدې دې.

**تشریح:** که آقا خوني او د دوهم خوی نارینه اولاد یعنی نوسی پریخودل.چه د هغوی پلار مړ شوی دې.ددې نه روسته آزاد کړې شوې مړ شو.چه دهغه څوك نسبی عصبه وارث نشته.نو دمعتق میراث به د آقا خوی ته ملاویږي.نوسو ته به نه ملاویږي.خکه چې د ولاء مستحق هم هغه وي.چه دهغه نسب د آقا په اړخ د ټولو نه زیات نژدې وي.د صحابو رضي الله عنهم د یو جماعت د حضرت عمر، حضرت علی ، حضرت ابن مسعود، حضرت عبدالله بن عمر، اسامه بن زید، ابو مسعود بدری ، او د حضرت زید بن ثابت رضي الله عنهم وغیرهم نه دا نقل دی.لکه څنګه چې وړاندې د سنن بیهقی په حواله سره تیرشوی دی. «انهم کانوا یجعلون الولاء للکبر من العصبة» بیا د مشائخو رحمهم الله د قول په بنا (بنیاد) باندې دلته د کبر ( لوئي) نه مراد قرب ( نیزدیکت) دې.یعنی کوم چې د ټولو نه زیات نژدې وي.او ښکاره ده.چه د آقا په نسبت چې کوم خوني دې.هغه د نوسو نه زیات نژدې دې.

## فصل فی ولاء الموالاة

ژباړه: ( دا) فصل د موالات د ولاء( په بیان کې ) دې.

**تشریح:** د ولاء عتاقه نه روسته ولاء موالات بیانوی.په دې وجه ولاء عتاقه د ولاء موالات نه زیات مضبوط وي.① یو خو په دې وجه چې ولاء عتاقه په هیڅ حالت کې هم د تحویل او انتقال قابل نه دې.په خلاف د ولاء موالات چې په دې کې مولا لپاره د عقل ادا کاوه نه وړاندې د منتقل کیدلو حق وي.② دوهم څکه چې ولاء عتاقه کې احیاء حکمی موجود دې.په خلاف د ولاء موالات، چې په دې کې احیاء بالکل نشته.③ دریم څکه چې د ولاء عتاقه د ارث سبب کیدلو او ددوی د ذوی الارحام نه مقدم کیدلو باندې دټولو اتفاق دې.په خلاف د ولاء مـوالات، چې په دې اړه کې د امامانو اختلاف دې.لکه چې امام شافعی رحمه الله د ولاء موالات قائل نه دې.هغوی فرمائی.چه ولاء خو صرف ولاء عتاقه دې.آئمه ثلاثه رحمهم الله هم دا اختیار کړې دې.بیا د مطلق ولاء لغوی او شرعی معنی د کتاب الولاء په پیل کې تیره شوې ده.

د ولاء موالات تعریف:پاتې شو خاص د ولاء موالات تفسیر، نو هغه په ذخیره کې داسې ذکرشوې دې. «هو ان یسلم رجل علی ید رجل فیقول للذی أسلم علی یده أو یضره والیتك علی انی إن مت فمیراثی لك و إن جنیت فعقلی علیك و علی عاقلتك و قبل الآخر عنه» ، ،یعنی ولاء موالات دادې.چه یو سړې د بل په لاس اسلام راوړي.اود کوم کس په لاس ئې چې اسلام راوړلې دې.هغه ته یا د هغه نه علاوه ته دا اووائی.چه ما تا سره موالات اوکړو.په دې شرط که زه مړشم.نو زما میراث به ستا وي.او که زه څه جرم اوکړم.نو ددې دیت به ستا او دستا د عاقله په ذمه وي.او دوهم کس دا قبول کړي ، ،

### د یو کس په لاس اسلام راوړلو کښې موالات کولو سره د ولاء حکم

قَالَ (وَإِذَا أَسْلَمَ رَجُلٌ عَلَى يَدِ رَجُلٍ) کله چې یو کس د چا په لاس اسلام راوړلو. وَوَالَاهُ عَلَى أَنْ يَرِثَهُ و هغه سره ئې موالات اوکړو.چه هغه به دده وارث وي. وَيَعْقِلَ عَنْهُ و دده دیت به ورکوی. که دې جنایت اوکړي. أَوْ أَسْلَمَ عَلَى يَدِ غَيْرِهِ یا ئې د بل چا په لاس باندې اسلام راوړلو. وَوَالَاهُ و هغه سره ئې موالات اوکړو. فَالْوَلَاءُ صَحِيحٌ نودا ولاء صحیح ده. وَعَقْلُهُ عَلَى مَوْلَاهُ، و دیت به دده په مولا وي. فَإِنْ مَاتَ نو که هغه مړشی. وَلَا وَارِثَ لَهُ غَيْرُهُ و هیڅ څوك وارث نه وي. فَمِيرَاثُهُ لِلْمَوْلَى) نو دده میراث به مولا لپاره وي.

**تشریح:** یو سړی د بل کس په لاس باندې اسلام راوړلو.او نومسلمه دده سره موالات اوکړو.چه زما د مرګ نه روسته به دې زما د کل مال وارث وي.اوکه زما نه څه جرم اوشی.نو دده د اړخه به هغه دیت ورکوی.یا ئې د بل چا په لاس اسلام راوړلو.او بل مسلمان سره ئې هم موالات اوکړو.نو زموږ په نیز دا عقد صحیح دې.اوس ددې نومسلمه د مرګ نه روسته به دا سړې وارث وي.که د هغه څوك وارث نه وي.اود جرم کاوه په صورت

كي به دهغه د اړخه تاوان ورکوي.د حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علي ، او د حضرت ابن مسعود ﷺ نه نقل دی.چه دې حضراتو موالات جائز ګرځولي دي.او ددې په سبب سره ئې وراثت ورکړې دې. ابراهيم نخعي ، سعيد بن المسيب حسن بصري ، مكحول، عمر بن عبدالعزيز، ربيعه، يحى بن سعد، عطاء، زهري ، حكم، حماد، امام ابوحنيفه او ددوی اصحاب ﷺ هم ددې قائل دی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللَّهُ: امام شافعي رحمه الله فرمائي. الْمُوَالَاةُ لَيْسَ بِشَيْءٍ چې موالات هيڅ نه دي.لِأَنَّ فِيهِ إِبْطَالَ حَقِّ بَيْتِ الْمَالِ خكه چې دې كي د بيت المال د حق ابطال دی.وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ فِي حَقِّ وَارِثٍ آخَرَ په دې وجه دا د دوهم وارث په حق كي نه صحيح كيږي.وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ عِنْدَهُ الْوَصِيَّةُ بِجَمِيعِ الْمَالِ او د بيت المال ددې حق په وجه ددوی په نيز د كل مال وصيت صحيح نه دی.وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْمُوصِي وَارِثٌ لِحَقِّ بَيْتِ الْمَالِ اګرچه د وصيت كونكي څوك وارث نه وي.وَإِنَّمَا يَصِحُّ فِي الثُّلُثِ بلكه صرف د دريمې څخه به صحيح وي.

تشريح: د ائمه ثلاثه او امام شعبي ﷺ په نيز موالات هيڅ شئ نه دي.( يعني داسې شئ نه دي.چه هغه موجب د ارث او عقل وي.خكه چې په دې كي د بيت المال د حق ابطال لازميږي.خكه چې د وراثت تعلق د نص په رو سره قرابت يا زوجيت سره دې.او د حديث په رو سره عتق سره دې.او دلته په دې كي هيڅ خبره هم موجود نه ده.او د وارث نه كيدلو په صورت كي مال بيت المال ته راځي.اوس كه عقد موالات صحيح اومنلې شي،نود بيت المال حق ختميږي.حالانكه د بيت المال د حق رعايت ضروري دې.د بيت المال ددې حق د رعايت په وجه د امام شافعي رحمه الله په نيز د كل مال وصيت كول جائز نه دي.اګرچه د موصي هيڅ وارث نه وي.بلكه صرف د دريمې برخې (حصې) دمال نه صحيح كيږي.او دغه ډول د بل موجود وارث په حق كي دا موالات نه جاري كيږي. «فكذا لايصح في حق بيت المال».

### د احنافو رحمهم الله دليل

ولنا قوله تعالى زمونږ دليل د الله تعالى ارشاد دې،، والذين عقدت أيمانكم فآتوهم نصيبهم او دچا سره چې ستا معاهده اوشوه.هغوی ته ورکړه.د هغوی حصه،، ﴿النساء:٣٣﴾ والآية في الموالاة دا آيت په اړه د موالات كي نازل شوې دې.

تشريح: زمونږ دليل دا آيت دې. ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ﴾ په دې كي ﴿ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ په معنى د ،، عاقدتم،، دې.لكه چې دوهم آيت كي دی. ﴿يَوْمَ يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾،، اى نفسه،، چونكه كسب او عمل زيات په لاسونو سره كيږي.په دې وجه د عقد اضافت ايمان اړخ ته اوكړې شو.وجه د استدلال داده.چه آيت د عقد موالات په اړه كي نازل شوې دې.دې دليل سره د مخكنى آيت ﴿وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ﴾ نه د وراثت په طور د برخو د استحقاق بيان مقصود وو.په ابتدائي طور باندې د قرابت او دنيكۍ او د سلوك په طور وركول مقصود نه وو.نو هم دغه ډول كوم چې په دې باندې عطف دې.د هغې نه مراد به هم استحقاق په طريقه د ارث وي.خكه چې د معطوف او معطوف عليه حكم يو وي.په مبسوط د بكري كي دی.چه الله تعالى ولاء موالات على الاطلاق د ارث سبب ګرځولي دې. ددې توپير نه بغير چې مړی لپاره بل څوك وارث وي.يا نه وي.صرف دومره خبره ده.چه د چا بل څوك وارث وي. د هغه په حق كي دا په قول د الله تعالى ﴿وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَى بِبَعْضٍ﴾ سره منسوخ شوې دې. او د چا چې بل څوك وارث نه وي.د هغه په حق كي هيڅ ناسخ نشته.نو هغه به د آيت د ظاهر لاندې داخل وي.

### د احنافو رحمهم الله دوهم دليل

{وَسُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلٍ اود نبى كريم ﷺ نه د هغه سړی اړه كي پوښتنه اوكړې شو.أَسْلَمَ عَلَى يَدِ رَجُلٍ آخَرَ چا چې د بل سړي په لاس باندې اسلام راوړو.وَوَالَاهُ فَقَالَ:.او هغه دده سره موالات اوكړو.هُوَ



أَحَقُّ النَّاسِ بِهِ مَحْيَاهُ وَمَمَاتَهُ}(١) نو هغوی ﷺ اوفرمائيل.چه د هغه په ژوند او مرګ كي د ټولو خلګو نه زيات هغه كس حقدار دې.وَهَذَا يُشِيرُ إِلَى الْعَقْلِ وَالْإِرْثِ فِي الْحَالَتَيْنِ هَاتَيْنِ، اودا اشاره ده.دوی دواړو حالتونو كي عاقله كيدلو او ميراث اړخ ته،

تشريح: زمونږ دليل دحضرت تميم داری ﷺ حديث دې. «قال: يارسول الله ﷺ ما السنة في الرجل يسلم على يد رجل من المسلمين؟ قال: هو اولى الناس بمحياه و مماته» (اصحاب سنن اربعه، حاكم، احمد، ابن ابى شيبه، دارمي، ابو يعلى، موصلي، طبراني، دارقطني، عبدالرزاق، بخاري، في الفرائض تعليقاً، واللفظ لأبي داؤد) علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه دا حديث د مرګ او ژوند دواړو حالتونو په ذكر كاوه سره عقل او ميراث اړخ ته اشاره كوي.يعني په حالت د ژوند كي عقل او ديت اړخ ته او د مرګ نه روسته ميراث اړخ ته.

په ذكرشوی دليل باندې بحث ۞ په مذكوره حديث كي دوې (دوه) قسمه كلام شوې دې.① اول په اعتبار د اتصال او انقطاع،② دوهم په اعتبار د اسناد د ضعف،د اول په اړه كي ① امام ترمذي فرمائي : «هذا حديث لا نعرفه إلا من حديث عبدالله بن موهب و يقال: وهب عن تميم الداري وقد ادخل بعضهم بين عبدالله بن موهب و بين تميم الداري قبيصة بن ذويب هكذا رواه يحى بن حمزة وهو عندي ليس بمتصل»،، دا داسې حديث دې.چه دا مونږ نه پيژنو.خود عبدالله بن موهب ( يا د وهب) د حديث نه.كوم چې دوی د حضرت تميم داری ﷺ نه روايت كړې دې.او بعضو د عبدالله بن موهب او د تميم داری په منځ كي قبيصه بن ذويب داخل كړې دې.لكه چې يحى بن حمزه دا هم دغه ډول روايت كړې دې.او دا زما په نيز متصل نه دې،،② حافظ بيهقي په كتاب المعرفه كي د امام شافعي رحمه الله قول نقل كړې دې: «هذا حديث ليس عندنا بثابت إنمايرويه عبدالعزيز بن عمرعن ابن وهب عن تميم الداري و ابن موهب ليس بمعروف عندنا ولا لقى تميماً فيما نعلم و مثل هذا لا يثبت عندنا و قال يعقوب بن سفيان الفسوري هذا خطاء ابن موهب لم يسمع من تميم ولا لحقه»،، امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه زمونږ په نيز دا حديث ثابت نه دې.خكه چې دا عبدالعزيز بن عمر د ابن موهب نه او هغه د تميم داری ﷺ نه روايت كړې دې.او موهب زمونږ په نيز معروف ( معلوم) نه دې.او زمونږ د علم مطابق حضرت تميم داری ﷺ سره دده ملاقات نه دې شوې.يعقوب بن سفيان الفسوري فرمائيلى دی.چه دا د ابن موهب غلطي ده.نه هغوی د حضرت تميم داری نه اوريدلى دی.او نه ئې هغوی سره ملاقات كړې دې،،③ او بيهقي په مناقب د امام شافعي رحمه الله كي فرمائيلى دی : «وقد صرح بعض الرواة فيه بسماع ابن موهب من تميم وضعفه البخاري و ادخل بعضهم بينه و بين تميم قبيصة و هو أيضا ضعيف و قد بيناه في كتاب السنن»،، بعضو راويانو په دې كي د حضرت تميم داری نه د ابن موهب د سماع صراحت كړې دې.خو امام بخاري رحمه الله دې ته ضعيف وئيلى دی.او بعضو د ابن موهب او تميم داری په منځ كي قبيصه داخل كړې دې.او هغه ضعيف دې،،؟

جواب۞ مذكوره حديث كوم چې حافظ بيهقي رحمه الله په طريق د ابونعيم په حديث د ،، عبدالعزيز بن عمر عن ابن موهب الهمداني،، روايت كړې دې.هغې كي د ،،قال سمعت تميماً،، صراحت موجود دې.دغه ډول د ابن ابى شيبه روايت ،، وكيع عن عبدالعزيز،، كي هم د سماع تصريح ده.نو حضرت وكيع او ابو نعيم دوې (دوه) جليل القدر ثقه راويان دی.چه هغوی د حضرت تميم داری ﷺ نه د ابن موهب د سماع صراحت كړې دې.ددې په خلاف يزيد بن خالد، هشام، او ابن يوسف ﷺ وغيره ددوی دواړو په منځ كي د قبيصه واسطه ذكر كړې ده.اوس كه واقعه هم داسې وي.لكه څنګه چې ابو نعيم او وكيع ذكر كړې ده.نو په دې به محمول كولې شي.چه ابن موهب حديث بالواسطه او بلا واسطه دواړه شان اوريدلې دي.اوكه دا ثابته شي.چه ابن موهب ته نه سماع حاصل ده.او نه لقاء، نو په منځ كي چې د قبيصه كومه واسطه ده.هغه هيڅ مضر نه ده.خكه چې قبيصه ثقه راوی دې.چه هغوی بې شكه او بې شبهٔ د حضرت تميم داری زمانه موندلې ده.نو ددوی عنعنه به اتصال باندې محمول كولې شي.په قول د حافظ ابن حجر، امام بخاري رحمه الله پخپل تاريخ كي دا موصول ذكركړې

(١) من حديث تميم الداري ﷺ أخرجه أبوداود في الفرائض باب ١٣ رقم ٢٩١٨)_

دي.④ پاتي شوه د ضعيف اسناد خبره، نو حافظ ابن المنذر وئيلي دي. «هذا الحديث مضطرب و عبدالعزيز راويه ليس بالحافظ» ⑤شيخ خطابي رحمه الله فرمائي. «و قد ضعف احمد بن حنبل هذا الحديث وقال: ان راويه عبدالعزيز ليس من اهل الحفظ والإتقان» حاصل دا چې د عبدالعزيز او عبدالله بن موهب دواړو اره کي كلام شوې دې؟

**جواب**❁ دادې چه حاكم دا حديث په طريق د ،، ابن موهب عن تميم،، روايت كاوه نه روسته فرمائيلي دي. ،،صحيح على شرط مسلم،، شيخ ابو زرعه دمشقي هم دا صحيح منلې دې.او وئيلي ئې دي. «هو حديث حسن المخرج متصل» پخپله حافظ ابن حجر په تقريب كي فرمائيلي دي.چه عبدالله ابن موهب د طبقهٔ ثالثه څخه دې.او ثقه دي.صاحب د كمال فرمائي.چه ابن موهب لره عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په قضاء د فلسطين باندې مامور كړې وو.ددوي نه عبدالعزيز، زهري ، يزيد بن عبدالله، عبدالملك بن ابي جميله، او عمرو بن مهاجر راويان دي.نو آيا داسې راوي ته هم مجهول وئيلي شي ؟ په دې وجه شيخ ذهبي وئيلي دي.كه يحى بن معين دې نه دې پيژندلې.نو هيڅ مضر ( او نقصان ده) نه دي.ځكه چې نورو خلګو هغوي ته ثقه وئيلي دي.⑤ پاتې شو د عبدالعزيز بن عمر په حافظه كي كلام، نو هغه په دې وجه مقبول نه دې.چه دا د صحيح بخاري د رواتو څخه دې.شيخ ابو زرعه فرمائيلي دي.،، لا باس به،، ابو نعيم فرمائي.چه هغه ثقه دې.د ابن عمار قول دې. «ثقة لا إختلاف فيه» يحى بن معين فرمائي. «ثقة روى يسراً فيما ذكرنا سقط إعتراض المعترضين كالبيهقي و الخطابي و إبن القطان و الشافعي»

د مذكوره دليل په تائيد كي نور روايات❁په دې باب كې نور آحاديث او آثار هم شته.مثلاً① طبراني په معجم كي ، دارقطني په سنن كي او ابن عدي په الكامل كي په طريق د،، معاويه بن يحي صدفي بواسطة قاسم بن عبدالعزيز،، د حضرت ابوامامه رضي الله عنه نه روايت كړې دې. «قال رسول الله ﷺ:من أسلم على يديه رجل فولاءه له» ② معجم طبراني او مسند ابن راهويه كي د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دې. «أنه أتى رسول الله ﷺ فقال: أن رجلاً أسلم على يدي وله مال وقد مات قال: فلك ميراثه» ③ دغه ډول په مصنف د ابن ابي شيبه كي مجاهد نه نقل دي. «أن رجلاً أتى عمر رضي الله عنه فقال: ان رجلاً أسلم على يدي فمات و ترك ألف درهم فتحرجت منها فقال أرءيت لو جنى جناية على من تكون؟ قال: على قال: فميراثه لك»

> وَلِأَنَّ مَالَهُ حَقُّهُ او ځكه چې دده مال هم دده حق دې. فَيَصْرِفُهُ إِلَى حَيْثُ شَاءَ،نو هغه چې چرته غواړي.خرج دي كړي. وَالصَّرْفُ إِلَى بَيْتِ الْمَالِ ضَرُورَةُ عَدَمِ الْمُسْتَحِقِّ او د بيت المال په اړخ خرج كول خود نه مستحق كاوه اړتيا سره كيږي. لَا أَنَّهُ مُسْتَحِقٌّ په دې وجه نه چې بيت المال ددې مستحق دې.

**تشريح:** دا زمونږ قياسي دليل دې.چه دده مال خو دده حق دې.نو هم ده ته اختيار دې.چرته چې غواړي.خرج دي كړي.اود امام شافعي رحمه الله دا وئيل. «لأن فيه إبطال حق بيت المال» ځكه صحيح نه دې.چه بيت المال كي دا خلول په دې اړتيا سره كيږي.چه څوك مستحق موجود نه وي.ددې لپاره نه كيږي.چه دا د بيت المال استحقاق وي.

**سوال**❁ د نبي كريم ﷺ ارشاد ،، الولاء لمن أعتق،، نه هم دا معلوميږي.چه ولاء موالات باطل دې.ځكه چې دې كي هيڅ معتق نشته.

**جواب**❁ د څه شي تخصيص بالذكر ددې نه د ما سوا په نفي باندې دلالت نه كوي.

### د وارث په موجودګۍ كښې د موالات حكم

> قَالَ (وَإِنْ كَانَ لَهُ وَارِثٌ) او كه دده څوك وارث وي (فَهُوَ أَوْلَى مِنْهُ) نود مولا څخه به هغه زيات غوره وي. (وَإِنْ كَانَتْ عَمَّةً أَوْ خَالَةً أَوْ غَيْرَهُمَا مِنْ ذَوِي الْأَرْحَامِ) اګرچه دا وارث ددې د پلار خور يا د مور خور يا ددوي نه علاوه بل څوك ذوى الارحام وي. لِأَنَّ الْمُوَالَاةَ عَقْدُهُمَا ځكه چې موالات خو ددوي دواړو عقد دې. فَلَا يَلْزَمُ غَيْرَهُمَا نودا به په نورو نه لازميږي. وَذُو الرَّحِمِ وَارِثٌ،



**تشريح:** كه ددې نومسلم موالات كونكي څوك وارث وي.نو هغه به دده د مولا نه مقدم وي.يعني ميراث به هغه ته ملاويږي.مولا ته به نه ملاويږي.اګرچه دغه وارث دده د پلار خور يا دمور خور( ترور) وي.يا ذوى الارحام څخه څوك وي.ځكه چې عقد موالات دوى دواړو پخپل طور باندې منعقد كړې دې.نو هغه به هم ددوي لپاره وي.په نورو به نه لازميږي.يعني هغوي په دې سره د نورو وارثانو حق نشي ختمولې.

> وَلَا بُدَّ مِنْ شَرْطِ الْإِرْثِ وَالْعَقْلِ كَمَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ اود ميراث د عاقله كيدلو شرط ضروري دې.لكه څنګه چې كتاب كي ذكر دى. لِأَنَّهُ بِالِالْتِزَامِ ځكه چې دوى كي هريو پخپله لازمولو سره كيږي. وَهُوَ بِالشَّرْطِ او دا التزام به په شرط سره كيږي.

**تشريح:** په عقدموالات كي د ميراث او عاقله كيدلو شرط ضروري دې.لكه څنګه چې په كتاب د مختصرالقدوري كي ذكر دى. «بأن يقول: واليتك على أن إن جنيت عقلت عني و إن جنيت عقلت عنك و إن مت ورثتني و إن مت ورثتك» وجه دادده.چه په ارث او عقل كي هر يو هغه وخت لازميږي.كله چې پخپله خپل ځان باندې لازم كړي.او لزوم په شرط سره حاصليږي.بيا د عقد موالات د صحت لپاره د ارث او عقل په شرط كيدلو باندې صاحب د غاية البيان دا اعتراض كړې دې.چه دا صحيح نه ده.ځكه چې حاكم شهيد په مختصرالكافي كي د ابراهيم نخعي رحمه الله قول ذكركړې دې. «إذا أسلم الرجل على يد رجل ووالاه فإنه يرثه و يعقل عنه وله أن يتحول بولائه إلى غيره مالم يعقل عنه فإذا عقل عنه لم يكن له أن يتحول إلى غيره و هذا قول أبي حنيفة و أبي يوسف و محمد رحمهم الله» دا كلام هم په دې دلالت كوي.چه صحت د شرط په ارث او عقل باندې موقوف نه دې.بلكه صرف عقد كيدل كافي دې. «بأن يقول أحدهما واليتك و الآخر قبلت»

**جواب**❁ دادې.چه د حاكم شهيد ددې دواړو د شرط كيدلو تصريح نه كول صرف په دې بنا (بنياد) دى.چه موالات ددې دواړو شرط كيدلو ته ښكاره متضمن دې.په دې وجه ئې د تصريح اړتيا نه دې محسوس كړې.

> وَمِنْ شَرْطِهِ أَنْ لَا يَكُونَ الْمَوْلَى مِنَ الْعَرَبِ او ددې شرط دا هم دې.چه مولا د عرب څخه نه وي.

**تشريح:** د موالات د شرطونو څخه يو شرط دا هم دې.چه هغه نومسلم چې هغه موالات كول غواړي.د اهل عرب څخه نه وي.ځكه چې د اهل عربو خپل منځ كي نصرت ( او مدد) په ذريعه د قبائل يعني رشته دارئ او خاندان سره كيږي.نو ددوى د موالات هيڅ اړتيا نشته.ځكه چې د موالات د نصرت په نسبت د قبائلو نصرت زيات مؤكد دي.

> لِأَنَّ تَنَاصُرَهُمْ بِالْقَبَائِلِ ځكه چې ددوى خپل منځ كي نصرت په قبيلو سره كيږي. فَأَغْنَى عَنِ الْمُوَالَاةِ.نو د موالات نه بې حاجته شو.

**تشريح:** په دې دا اعتراض كيږي.چه تناصر صرف يو حكمت دې.اود حكمت رعايت په دواړو كي نه كيږي.بلكه صرف په جنس كي كيږي.لكه څنګه چې استبراء كي دى.چه ددې حكمت د رحم فراغت دې.چه ددې اعتبار في الجمله كيږي.په هر فرد كي نه كيږي.تردې كه وينځه ئې د يوې ښځې نه واخستله.يا صغيره وينځه ئې واخستله.نو استبراء نه واجبيږي.

**جواب**❁ دادې.چه تناصر حكمت نه دې. بلكه علت دې.

**سوال**❁ د علت موجود كيدل ضروري دى.حالانكه تناصر كله وي.اوكله نه وي ؟

**جواب**❁ تناصر په هرحال كي موجود وي.په تحقيقي وي.او كه تقديري وي.

**فائده**❁ موالات لپاره ډير شرطونه دى :① مولا( نومسلم) مجهول النسب وي.په دې طريقه چې هغه هيڅ چا اړخ ته منسوب نه وي.پاتې شو د غير دده په اړخ منسوب كيدل، نودا دموالات مانع نه دې.② دده لپاره ولاء عتاقه نه وي.او نه د چا سره ولاء موالات وي.③ هغه د اهل عرب څخه نه وي.④ په عقد موالات كي ارث او عقل ذكر وي.⑤ متعاقدين عاقل، بالغ، او ازاد وي.ځكه چې موالات د صبى د ولي د اجازت نه

بغير، او موالات د غلام د ضض آقا داجازت نه بغير باطل دي.

قَالَ (وَلِلْمَوْلَى أَنْ يَنْتَقِلَ عَنْهُ بِوَلَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ) او مولا لپاره جائز دي.چه دده د موالات نه اوګرځيږي.او بل ارخ ته منتقل شي. (مَا لَمْ يَعْقِلْ عَنْهُ) ترکومه پورې چې دده د ارخه عاقله کيدلو سره هيڅ نه وي ورکړې. لِأَنَّهُ عَقْدٌ غَيْرُ لَازِمٍ بِمَنْزِلَةِ الْوَصِيَّةِ،خکه چې دا عقد په مرتبه د وصيت لازمی نه دې. وَكَذَا لِلْأَعْلَى أَنْ يَتَبَرَّأَ عَنْ وَلَائِهِ لِعَدَمِ اللُّزُومِ،دغه ډول د اعلی موالی لپاره جائز دي.چه دده ولاء پريږدي.د عدم لزوم په وجه. إِلَّا أَنَّهُ يُشْتَرَطُ فِي هَذَا أَنْ يَكُونَ بِمَحْضَرٍ مِنَ الْآخَرِ كَمَا فِي عَزْلِ الْوَكِيلِ قَصْدًا،خو په دې کې دا شرط دي.چه د دوهم په موجودګۍ کې وي.لکه څنګه چې د وکيل په قصد سره معزول کاوه کې کيږي. بِخِلَافِ مَا إِذَا عَقَدَ الْأَسْفَلُ مَعَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْأَوَّلِ په خلاف ددې کله چې مولاټې اسفل (لاندې مولا) د مولاټې اول په غير موجودګۍ کې بل چا سره عقد موالات کړی وي. لِأَنَّهُ فَسْخٌ حُكْمِيٌّ بِمَنْزِلَةِ الْعَزْلِ الْحُكْمِيِّ فِي الْوَكَالَةِ. خکه چې دا حکمی فسخ ده.لکه څنګه چې وکالت کې حکمی عزل وي.

**تشريح:** د نومسلم موالات کونکی لپاره جائز دي.چه د چا سره هغه موالات کړې دې.د هغه د موالات نه اوګرځي.او بل سره موالات اوکړي.په دې شرط چې مولاټې اول دده د ارخه عاقله شوی نه وي.او څه ئې ادا کړې نه وي.خکه چې دا عقد په مرتبه د وصيت لازمی نه دې.ددې عدم لزوم په وجه مولاټې اعلی هم دده ولاء پريښودې شي.په دې شرط چې دا ترك د بل په موجودګۍ کې وي.لکه څنګه چې په قصد سره د وکيل په معزول کاوه کې کيږي.البته که نومسلم د مولاټې اول د علم نه بغير بل چا سره موالات اوکړو.نو دا جائز دې.خکه چې دا حکمی فسخ ده.لکه که د بيع لپاره ئې څوك وکيل کړو.بيا ئې پخپله خرڅ کړو.نو وکيل حکماً معزول کيږي.

قَالَ (وَإِذَا عَقَلَ عَنْهُ) او که هغه دده د ارخه عاقله جوړ شوې وي.( او جرمانه ورکړې وي ). (لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَتَحَوَّلَ بِوَلَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ) نو دده دولاء څخه په بل ارخ ته د منتقل کيدلو اختيار نه وي. لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْغَيْرِ،خکه چې دې سره د غير حق متعلق شو. وَلِأَنَّهُ قَضَى بِهِ الْقَاضِي،او خکه چې قاضي ددې حکم ورکړې دې. وَلِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ عِوَضٍ نَالَهُ كَالْعِوَضِ فِي الْهِبَةِ،او خکه چې دا عوض په مرتبه دعوض دې.کوم چې ده حاصل کړې دې.په هبه کې د عوض پشان، وَكَذَا لَا يَتَحَوَّلُ وَلَدُهُ،او دده اولاد هم د ولاء نه نشي ګرځيدلې. وَكَذَا إِذَا عَقَلَ عَنْ وَلَدِهِ دغه ډول که مولا دده دځوی د ارخه عاقله شو.او ادا کړې ئې وي. لَمْ يَكُنْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَتَحَوَّلَ نو په دوی کې څوك هم د ولاء نه نشي ګرځيدلې. لِأَنَّهُمْ فِي حَقِّ الْوَلَاءِ كَشَخْصٍ وَاحِدٍ قَالَ خکه چې په حق د ولاء کې دوی دواړه په مرتبه د يو سړي دي. (وَلَيْسَ لِمَوْلَى الْعَتَاقَةِ أَنْ يُوَالِيَ أَحَدًا) او مولاټې عتاقه ته دا اختيار نشته.چه هغه چا سره موالات اوکړي. لِأَنَّهُ لَازِمٌ،خکه چې ولاء عتاقه لازم دې. وَمَعَ بَقَائِهِ لَا يَظْهَرُ الْأَدْنَى او ددې په پاته پاتې کيدلو کې ادنی نشي ښکاره کيدلې.

**تشريح:** که مولاټې اول دده د ارخه عاقله شوې وي.او جرمانه ئې ادا کړې وي.نو بيا دده د ولاء نه نشي ګرځيدلې.خکه چې دده سره د غير حق متعلق شوې دې.او قاضي دده مولا عاقله ګرځولې دې.او په دده باندې ئې د ديت حکم کړې دې.او په دې وجه هم چې دا په منزله د يو عوض دې.چه هغه ده حاصل کړو.لکه څنګه چې د هبه عوض اخستلو نه روسته رجوع نشي کولې.بلکه روسته دده اولاد هم ددې ولاء نه نشي ګرځيدلې. دغه ډول که دده ولاء دده د ځوی د ارخه عاقله شو.او جرمانه ئې اداکړله.نو په دوی کې څوك هم ولاء نه نشي ګرځيدلې.خکه چې په حق د ولاء کې مولا اعلی ، مولا اسفل او دده ځوئې واړه په مرتبه د يو سړي دي.

# كِتَابُ الْإِكْرَاهِ



ژباړه: (دا) کتاب د اکراه (په بيان کې) دې.

**تشريح:** د عقد موالات په ذريعه د اعلی حال، حرمت نه حلت ارخ ته تبديليږي مطلب دادې.که موالات نه وو.نو د مولا اسفل مال اخستل به حلال نه وو.کله چې عقد موالات اوشو.نو اوس دده لپاره دده مال اخستل حلال شو.بالکل هم دا خبره اکراه کې ده.چه په دې کې د مخاطب حال د حرمت نه حلت ارخ ته بدليږي يعنی دده لپاره چې د کوم شئ مباشرت د اکراه نه وړاندې حرام وو هغه د اکراه نه روسته حلاليږي.په دې وجه ئې د موالات نه روسته کتاب الاكراه ذکرکړې دې.

### د اکراه لغوي او اصطلاحي تعريف

قَالَ (الْإِكْرَاهُ يَثْبُتُ حُكْمُهُ إِذَا حَصَلَ مِمَّنْ يَقْدِرُ عَلَى إِيقَاعِ مَا تَوَعَّدَ بِهِ سُلْطَانًا كَانَ أَوْ لِصًّا) د اکراه حکم ثابتيږي.کله چې حاصل شي.د هغه کس نه چې قادر وي.د هغې په واقع کاوه باندې،د کوم څه ئې چې دهمکی ورکړې ده.بادشاه وي.او که غل وي. لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ اسْمٌ لِفِعْلٍ يَفْعَلُهُ الْمَرْءُ بِغَيْرِهِ خکه چې اکراه د داسې فعل نوم دې.کوم چې سړې پخپل غير سره عمل کې راولی فَيَنْتَفِي بِهِ رِضَاهُ أَوْ يَفْسُدُ بِهِ اخْتِيَارُهُ مَعَ بَقَاءِ أَهْلِيَّتِهِ چې په دې سره دده رضامندی ختميږي.يا دده اختيار فاسديږي.دده اهليت پاته پاتې کيدلو سره.

**تشريح:** اکراه په لغت کې د يو کس مجبوره کول او په نا خوښه کار باندې راضی کاوه ته وائی.په اصطلاح د فقهاؤ کې اکراه هغه فعل دې.چه هغه سړې د بل په سبب سره داسې اوکړي.چه د هغه رضامندي ختمه شي.يا د هغه اختيار فاسد شي.

د اکراه اقسام: د اکراه دوې (دوه) قسمونه دي.① اکراه ملجئ (کامل اکراه) ② اکراه غير ملجئ (اکراه قاصر)،اکراه ملجئ هغه ده.چه هغې کې مکره ته د خپل خان يا د يو اندام هلاکيدو خطره وي.لکه د قتل يا د لاس کټ کاوه وغيره دهمکی ورکول. په دې صورت کې د مکره رضامندي فوت کيږي.او اختيار فاسديږي.اکراه غير ملجئ هغه دې.چه هغې کې د خان يا اندام هلاکيدلو خطره نه وي.بلکه صرف رضامندي فوت کيږي.لکه د قيد دهمکی ، يا د وهلو وغيره دهمکی ور کاوه په صورت کې.نو د رضا فوت کيدل د اختيار د فساد نه عام دې.خکه چې مقابل د رضا کراهت دې.او مقابل د اختيار جبر (زبردستی) دې.او د قيد کاوه او د وهلو ټ کاوه په اکراه کې بلا شبه اکراه موجود ده.نو رضا معدوم شوه.خو اختيار سره د وصف د صحت نه موجود دې.خکه چې اختيار هغه وخت فاسديږي.کله چې د خان يا د يو اندام فوت کيدلو خطره وي.نو اکراه ملجئ به هغه تصرفاتو کې موثر وي.په کومو کې چې د رضا حاجت وي.لکه بيع، اقرار، او اجاره وغيره.او اکراه ملجئ په ټولو تصرفاتو کې موثر وي.

فائده: که اکراه ملجئ وي.او که غير ملجئ وي.په دواړو صورتونو کې نه په دې سره د مکره اهليت باطليږي.او نه دده نه نطاب (کم عقل توب) وضع کيږي.ددې دليل دادې.چه د مکره افعال په فرض، خطر و اباحت، او رخصت کې مختلف کيږي.او کله دې ګناهګاريږي.او کله مستحق د اجر او ثواب وي.مثلاً په ده باندې د نفس قتل، لاړه کې شوکه کول،او زنا وغيره حرام ده.نو هغه به ددې په مباشرت (او په دې باندې عمل کولو) سره ګناهګاريږي.او که منع شي.نو ثواب به ملاويږي.دغه ډول دده لپاره د مردارې خوړلو، او د شرابو څښلو اباحت دې.او د کلمهٔ کفر وئيلو رخصت دې.شيخ فخر الاسلام بزدوی رحمه الله په خپلو اصولو کې يو دريم ډول بل هم ذکرکړې دې.او هغه دا چې پلار يا ځوئې يا هغه څوك چې ددوی قائم مقام وي.د هغه د قيد کاوه دهمکی ورکړي. ﴿و كأنه لم يجعله من أقسام الإكراه لعدم ترتب أحكامه عليه﴾.

### د اکراه ثابتيدو شرطونه؟

وَهَذَا إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ إِذَا خَافَ الْمُكْرَهُ تَحْقِيقَ مَا تَوَعَّدَ بِهِ،او دا خبره به هغه وخت متحقق کيږي.کله چې مکره ته دا يره وي.چه هغه د کوم شئ دهمکی ورکوی. هغه به تحقيق سره کولې شي. وَذَلِكَ إِنَّمَا يَكُونُ مِنَ الْقَادِرِ اودا به

دهغه کس نه کیږي چه قادر وي. وَالسُّلْطَانُ وَغَيْرُهُ سِيَّانِ عِنْدَ تَحَقُّقِ الْقُدْرَةِ، وَالَّذِيْ او په دې کې سلطان وغیره برابر دي. د قدرت کیدلو په وخت. قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ او امام ابوحنیفه رحمه الله چې دا فرمائیلي دي. اَنَّ الْإِكْرَاهَ لَا يَتَحَقَّقُ اِلَّا مِنَ السُّلْطَانِ چې اکراه نه متحقق کیږي، مګر د سلطان نه. لِمَا أَنَّ الْمَنَعَةَ لَهُ ځکه چې قوت هم د هغه دې. وَالْقُدْرَةُ لَا تَتَحَقَّقُ بِدُوْنِ الْمَنَعَةِ. او قدرت د قوت نه بغیر نه متحقق کیږي. فَقَدْ قَالُوْا نو مشائخو فرمائیلي دي. هَذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ چې دا د وخت او زمانې اختلاف دې. لَا اخْتِلَافُ حُجَّةٍ وَبُرْهَانٍ، د حجت او دلیل اختلاف نه دې. وَلَمْ تَكُنِ الْقُدْرَةُ فِيْ زَمَنِهِ إِلَّا لِلسُّلْطَانِ، او داسې قدرت دهغوی په زمانه کې نه وو. مګر بادشاه ته. ثُمَّ بَعْدَ ذَلِكَ تَغَيَّرَ الزَّمَانُ وَأَهْلُهُ، ددې نه روسته زمانه او ددې خلګ بدل شو. ثُمَّ كَمَا تُشْتَرَطُ قُدْرَةُ الْمُكْرِهِ لِتَحَقُّقِ الْإِكْرَاهِ بیا لکه څنګه چې د مکره قدرت شرط دې. د اکراه د تحقق دپاره. يُشْتَرَطُ خَوْفُ الْمُكْرَهِ وُقُوْعَ مَا يُهَدَّدُ بِهِ دغه ډول دا شرط هم دې. چه مکره ته یره وي. دهغې د واقع کیدلو. د کوم څه چې هغه دهمکي ورکوي. وَذَلِكَ بِأَنْ يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّهُ يَفْعَلُهُ لِيَصِيْرَ بِهِ مَحْمُوْلًا عَلَى مَا دُعِيَ إِلَيْهِ مِنَ الْفِعْلِ په دې طریقه چې دهغه غالب ګمان دا وي. چه هغه به داسې اوکړي. چه هغه ددې په وجه پریشان شي. ددې په کاوه باندې. په کوم چې اکراه کړې شوې ده.

**تشريح:** د اکراه د تحقق لپاره دوې (دوه) شرطونه دي: ① مکره په هغه امر باندې قادر وي. د کوم چې هغه یره ورکوي. که هغه د وخت بادشاه وي. او که غل وي. یا بل څوك وي. د امام صاحب رحمه الله نه چې یو روایت دادې. چه اکراه د بادشاه نه بغیر بل څوك نشي کولې. دا د هغوی د زمانې په لحاظ سره دی. چه هغه زمانه کې به داسې قدرت صرف بادشاه ته حاصل وو. نن سهار دا خبره نشته. نن سهار خو د هر فساد کونکي نه اکراه کیداې شي. لکه څنګه چې د صاحبینو رحمهما الله قول دې. او هم په دې فتوی ده. ② مکره ته ددې خبرې غالب ګمان وي. چه مکره د کومې خبرې دهمکي ورکوي. هغه به دا خامخا کوي.

## د اکراه د احکامو تفصیل

قَالَ (وَإِذَا أُكْرِهَ الرَّجُلُ عَلَى بَيْعِ مَالِهِ) کله چې مجبوره کړې شو. یو سړی د خپل مال په خرڅولو، أَوْعَلَى شِرَاءِ سِلْعَةٍ یا د یو سامان په اخستلو، أَوْعَلَى أَنْ يُقِرَّ لِرَجُلٍ بِأَلْفٍ یا د چا لپاره د زرو (درهمو) په اقرار کولو، أَوْيُؤَاجِرَ دَارَهُ یا دخپل کور په کرایه ورکاوه باندې، فَأُكْرِهَ عَلَى ذَلِكَ بِالْقَتْلِ أَوْبِالضَّرْبِ الشَّدِيْدِ أَوْبِالْحَبْسِ په قتلولو یا سختو وهلو یا د قید کاوه په دهمکۍ سره، فَبَاعَ نو هغه خرڅ کړو. أَوِاشْتَرَى فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَمْضَى الْبَيْعَ نو هغه ته اختیار دې. که غواړي بیع دې جائز اوساتي. وَإِنْ شَاءَ فَسَخَهُ و که غواړي. ماته دې کړي. وَرَجَعَ بِالْمَبِيْعِ) او مبیع دې واپس واخلي.

**تشريح:** یو سړی لره په دهمکۍ د قتل، یا په زبردستو وهلو تکولو، یا اوږدې زمانې پورې په قید کاوه د یو شي په خرڅولو، یا اخستلو یا اقرار کاوه باندې مجبور کړې شو. او هغه دا شي خرڅ کړو. یا ئې واخستلو. یا ئې دهغې اقرار اوکړو. نو د اکراه د زوال نه روسته هغه ته اختیار دې. که غواړي، دا عقود دې نافذ کړي. او که غواړي. فسخ دې کړي. ددې قاعده کلیه داده. چه زمونږ په نیز د مکره واړه تصرفات د قول په لحاظ سره منعقد کیږي. اوس په کومو عقودو کې چې فسخ احتمال شته. لکه بیع او اجاره وغیره، هغه دې فسخ کولې شي. او په کومو عقودو کې چې د فسخ احتمال نشته. لکه طلاق، نکاح، عتاق، تدبیر، استیلاد، نذر وغیره، هغه دې نشي فسخ کولې. بلکه هغه لازمیږي. البته د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز نه لازمیږي.

لِأَنَّ مِنْ شَرْطِ صِحَّةِ هَذِهِ الْعُقُوْدِ التَّرَاضِيْ، ځکه چې ددې عقودو د صحت شرط خپل منځ کې رضامندي ده. قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى د الله تعالی ارشاد دې. ،، {إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ} مګر دا چې هغه ستا خپل منځ کې رضامندۍ سره تجارت وي ،، {النساء:۲۹} وَالْإِكْرَاهُ بِهَذِهِ الْأَشْيَاءِ يُعْدِمُ الرِّضَا او ذکرشوي څیزونو سره اکراه کول رضامندي ختمول دي. فَيَفْسُدُ، نو عقد به فاسد وي.



**تشريح:** یعنی په اکراه ملجئ سره رضاء معدوم کیږي. حالانکه ددې عقودو د صحت شرط دادې. چه خپل منځ کې رضامندي موجود وي. لکه د الله تعالی ارشاد دې «لَا تَأْكُلُوْا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ» او ذکر شوی دهمکیانو سره اکراه کولو کې رضامندي ختمیږي. نو عقد به فاسد وي. ځکه چې د شرط نه موجود کیدلو په وجه د مشروط هم نفي کیږي.

**سوال:** د عدم رضامندۍ په صورت کې دې آیت سره حرمت ثابتیږي. خود آیت «وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا» اطلاق د بیع د جواز موجب دې. اګرچه رضا معدوم وي؟

**جواب:** بیع په لغت کې مبادله د مال بالمال بالتراضی ته وائي. او د شریعت مطابق حقیقت کیدل اصل دی.

**سوال:** د آیت د پیل «لَا تَأْكُلُوْا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ» نه خو دا معلومیږي. چه بیع به باطل وي؟

**جواب:** د باطل نه مراد دادې. چه د شریعت د اړخه جائز نه دې. لکه سرقه، خیانت، غصب، جواري، اوعقود ربا وغیره او «عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ» د تجارت صفت دې. «أي تجارة صادرة عن تراض».

بِخِلَافِ مَا إِذَا أُكْرِهَ بِضَرْبِ سَوْطٍ په خلاف ددې که د یوې کوړې وهلو، أَوْحَبْسِ يَوْمٍ یا د ورځې قید کولو، أَوْقَيْدِ يَوْمٍ یا د هتکړو اچولو دهمکي وي. لِأَنَّهُ لَا يُبَالِيْ بِهِ بِالنَّظَرِ إِلَى الْعَادَةِ ځکه چې د عادت په لحاظ ددې پرواه نشي کولې. فَلَا يَتَحَقَّقُ بِهِ الْإِكْرَاهُ نو په دې سره به اکراه نه متحقق کیږي.

**تشريح:** په خلاف ددې که د یوې کوړې وهلو، یا د یوې ورځې قید کولو، یا یوې ورځې پورې د هتکړو اچولو دهمکي ئې ورکړله. نو په داسې قسمه معمولي دهمکۍ سره اکراه نه متحقق کیږي. ځکه چې د عام عادت په لحاظ ددې پرواه نشي کولې؟

**سوال:** د علامه مرغیناني رحمه الله آخري کلام د کلام د پیل متناقض دې. ځکه چې «بخلاف ما إذا أكره» کلام په مذکوره صورتونو کې د اکراه په تحقق باندې دلالت کوي. ګنې داسې وئیل بېکار وو. «بخلاف ما إذا ضرب بسوط» او «فلا يتحقق به الإكراه» صراحتاً داکراه په عدم تحقق باندې دلالت کوي. نو دواړه کلامونه متناقض شو؟

**جواب:** په «بخلاف ما إذا ضرب بسوط» کې داکراه نه مراد ددې لغوي معنی ده. یعنی «حمل الإنسان على أمر يكرهه» او دا معنی په مذکوره صورتونو کې بې شکه او بې شبهٔ متحقق ده. او په «فلا يتحقق به الإكراه» سره چې د کومې اکراه نفي شوې ده. هغه د شرعي معنی په لحاظ سره ده. چه هغې باندې ددې احکام مرتب کیږي. ،،فلا تناقض،، دا هم وئیلې کیداې شي. چه پیل کې اکراه سره تعبیر کول په طریقه دمشاکلت دی. لکه چې په قول د الله تعالی کې دی. «تَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِيْ وَلَا أَعْلَمُ مَا فِيْ نَفْسِكَ» په دې صورت کې به لفظ د اکراه حقیقت نه وي. نه لغوي اعتبار سره او نه شرعي اعتبار سره. بلکه مجاز به وي. ،، فلا تناقض،،

إِلَّا إِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَاحِبَ مَنْصِبٍ خو کله چې دا سړې د منصب مالك وي. يَعْلَمُ أَنَّهُ يَسْتَضِرُّ بِهِ لِفَوَاتِ الرِّضَا، چې د هغه د حال نه دا ښکاره کیږي. چه ده به په دې سره هم نقصان کیږي. د رضامندۍ نه کیدلو په وجه.

**تشريح:** البته که دا مکره سړې چا ته چې د کوړو وهلو، یا د یوې ورځې د قید دهمکي ورکړې شوې ده. د قاضي وغیره پشان وجیه او معزز سړې وي. چه دهغه په حق کې د یوې ورځې قید یا یوه کوړه هم بې عزتي ده. تردې چې په مجمع او مجلس کې دده بې عزتي هم د رسوایۍ او ذلت سبب دې. نو دده په حق کې داسې معمولي دهمکي هم اکراه ده. بعض شوافع، امام مالك، اوپه یو روایت کې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې. او دوهم روایت دا دې. چه دا دهمکي اکراه نه ده. د قاضي شریح نه نقل دی. چه قید، دهمکي، او وهل تکول، د خلګو د حالاتو د اختلاف په اعتبار سره اکراه ده.

وَكَذَا الْإِقْرَارُ حُجَّةٌ لِتَرَجُّحِ جَنْبَةِ الصِّدْقِ فِيْهِ عَلَى جَنْبَةِ الْكَذِبِ، دغه ډول اقرار هم په دې وجه حجت جوړیږي. چه په دې کې د رشتیاؤ اړخ د دروغو په اړخ باندې راجح وي. وَعِنْدَ الْإِكْرَاهِ يَحْتَمِلُ او د اکراه په وخت احتمال دې. أَنَّهُ

يكذب لدفع المضرة چي ده د دفع د ضرر لپاره د دروغو اقرار کړي وي.

تشريح: په نهايه، بنايه، او عنايه کي دي چه دا په مخکني قول ﴿والإكراه بهذه الأشياء يعدم الرضاء فيفسد﴾ باندي عطف دي مطلب دادي چه د قتل، او وهل ټکول، او د ډيري زماني قيد کاوه دهمکئ سره اقرار هم فاسديږي وجه داده چه اقرار في نفسه د صدق او کذب په منځ کي واقع دي خود رضامندئ او خوشحالئ په صورت کي په دلالت د حال سره د صدق اړخ راجح وي خکه ښکاره هم داده چه سړي دخپل ځان تکذيب نه کوي او د اکراه په حالت کي دا احتمال شته چه شايد (کيداي شي) هغه د ضرر دفع کاوه په خاطر د دروغو اقرار کړي وي د صاحب د نتائج رحمه الله رائي داده چه قول مذکور ﴿لأن من شرط صحته ... نه تر... فيفسد﴾ پوري پوره مجموعه باندي عطف دي.

## د مکره د بيع حکم

ثم إذا باع مكرها کله چي مکره شو او بيع ئي اوکړله. وسلم مكرها او د مکره په حالت کي ئي اوسپارله. يثبت به الملك عندنا نو په دي سره به زموږ په نيز ملك ثابتيږي. وعند زفر لا يثبت او د امام زفر رحمه الله په نيز به نه ثابتيږي. لأنه بيع موقوف على الإجازة ځکه چي دا بيع اجازت باندي موقوف ده. ألا ترى آيا نه ګوري. أنه لو أجاز که هغه اجازت ورکړي. جاز نو جائز کيږي. والموقوف قبل الإجازة لا يفيد الملك، او بيع موقوف د اجازت نه وړاندي مفيد د ملك نه وي. ولنا زموږ دليل دادي. أن ركن البيع صدر من أهله مضافا إلى محله چي رکن د بيع دده د اهل نه خپل محل اړخ ته مضاف صادر شوي دي. والفساد لفقد شرطه وهو التراضي او فساد ددي د شرط يعني د رضامندئ مفقود کيدلو په وجه دي. فصار كسائر الشروط المفسدة نو د نورو مفسد شرطونو پشان شو. فيثبت الملك عند القبض نو د قبضي په وخت به ملك ثابتيږي. حتى لو قبضه تردي که قبضه ئي کړو. وأعتقه او هغه ئي آزاد کړو. أو تصرف فيه تصرفا يا ئي په دي کي څه داسي تصرف اوکړو. لا يمكن نقضه چي هغه نشي ماتيدي. جاز نو تصرف به جائز وي. ويلزمه القيمة كما في سائر البياعات الفاسدة او په ده به قيمت لازم وي. لکه څنګه چي په نورو فاسد بيوع کي کيږي.

تشريح: که يو سړي د مکره (مجبوره) کيدلو په حالت کي څه شئ خرڅ کړو. او د مجبورئ په حالت کي ئي دغه شئ مشتري ته اوسپارلو. او مشتري په هغې قبضه اوکړله. نو زموږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز مشتري ددي مالك کيږي. د امام زفر او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز نه مالك کيږي. هغوی دا فرمائي. چه د مکره بيع اجازت باندي موقوف ده. او بيع موقوف د اجازت نه وړاندي مفيد د ملك نه وي. موږ دا وايو. چه د اکراه په وجه ارکان د بيع يعني ايجاب او قبول معدوم نه وي. صرف شرط د جواز يعني رضا معدوم وي. نود مکره بيع فاسد شوه. او په بيع فاسد کي مشتري په قبضه کاوه سره د مبيع مالك کيږي. تردي که مشتري مبيع باندي قبضه اوکړله. او هغه مثلاً غلام وو. هغه ئي آزاد کړو. يا ئي مبيع کي څه داسي تصرف اوکړو. چه هغه نشي ماتيدي. مثلاً غلام ئي مدبر کړو. يا ئي وينځه حامله کړله. چه هغې نه بچي پيدا شو. نو دا تصرف به جائز وي. او په ده به قيمت لازم وي. لکه څنګه چي په نورو فاسد بيوع کي کيږي.

وبإجازة المالك يرتفع المفسد وهو الإكراه وعدم الرضا او د مالك په اجازت سره امر مفسد يعني اکراه او عدم رضا ختميږي. فيجوز نو بيع به جائز وي.

تشريح: د يو سوال ځواب دي. سوال دادي. که د مکره بيع د نورو فاسد بيوع پشان وه. لکه څنګه چي تا بيان کړي دي. نو د مکره په اجازت ورکاوه سره هم جائز کيدل پکار نه دي. لکه څنګه چي په نورو فاسد بيوع کي نه جائز کيږي؟

جواب: دادي چه په مکره بيع کي دوي (دوه) جهته دي. ① يو دا چي هغه د مالك په اجازت باندي موقوف وي. په دي جهت سره دا د بيع موقوف مشابه ده. ② دوهم دا چي په دي کي رکن د بيع يعني ايجاب او قبول د يو عاقل بالغ مالك نه په خپل محل کي صادر شوي ده. خو په دي کي شرط د جواز يعني رضامندي ختميږي. په دي جهت سره دا د بيع فاسد مشابه ده. نو په دي حيثيت سره چي دا د بيع موقوف مشابه ده. کوم وخت هم چي مالك اجازت ورکړي. جائز کيږي. او په دي حيثيت سره چي دا د بيع فاسد مشابه ده. د قبضي نه روسته به مفيد د ملك وي. بيا د مکره په اجازت ورکاوه سره چونکه امر مفسد يعني اکراه او عدم رضا ختميږي. په دي وجه به بيع جائز وي. په خلاف د نورو فاسد بيوع، چي هغې کي فساد پخپل حالت باندي پاته پاتي کيږي.



## په بيع مکره او بيع فاسد کښي فرق

إلا أنه لا ينقطع به حق استرداد البائع وإن تداولته الأيدي خو په دي سره به د بائع حق واپس نه ساقطيږي. اګرچه مبيع لاس په لاس تلي وي. ولم يرض البائع بذلك په داسي حال کي چي بائع په دي سره راضي شوي نه وي. بخلاف سائر البياعات الفاسدة په خلاف د نورو فاسدو بيوع. لأن الفساد فيها لحق الشرع ځکه چي دي کي فساد د شرع د حق په وجه دي. وقد تعلق بالبيع الثاني حق العبد او د بيع ثاني په وجه د بنده حق متعلق شوي دي. وحقه مقدم لحاجته او د بنده حق مقدم وي. دده د اړتيا په وجه. أما هاهنا الرد لحق العبد او دلته واپسي د بنده د حق په وجه ده. وهما سواء او په دي کي دوی دواړه برابر دي. فلا يبطل حق الأول لحق الثاني نو د بل د حق په وجه په د ړومبي حق نه باطليږي.

تشريح: دا د تيرشوي قول ﴿كما في سائر البياعات﴾ نه استثناء ده. ددي مقصد د بيع فاسد او بيع مکره په منځ کي توپير کول دي. د توپير حاصل دادي. چه د بيع اکراه په صورت کي بائع لپاره د مبيع واپس اخستلو کوم حق دي. هغه هيڅ کله نه ساقط کيږي. ترکومه پوري چي بائع نه وي راضي شوي. اګرچه مبيع د يو نه يواو د بل نه بل لاس ته تلي وي. په خلاف د نورو فاسد بيوع، که هغې کي مشتري مبيع د بل چا په لاس د بيع صحيح په طور خرڅ کړو. نو د بائع اول د واپسئ حق ساقطيږي. ځکه چي دي کي کوم فساد دي. هغه د شريعت د حق په وجه دي. او د دوهم بيع په وجه د دوهم مشتري حق هم متعلق شو. نو حق د شرع خو دا غواړي. چه هغه واپس شي. او د دوهم مشتري حق دا غواړي. چه واپس نشي. او په داسي صورت کي د بنده حق مقدم کولي شي. ځکه چي بنده ته ددي اړتيا دي. او شرع بې نيازه (او بې حاجته) ده. او دلته د بيع اکراه په صورت کي واپس هم د بنده د حق په وجه ده. يعني دده د مجبورئ په وجه. چه په ده باندي اکراه شوي ده. او بنده ګان پخپلو کي برابر اړتيا مند (او حاجت مند) دي. نو د نورو بنده ګانو دحق په وجه به د ړومبي بنده حق نه ساقطيږي.

دوهم فرق: په ذخيره کي دوهم فرق دا بيان کړي شوي دي. چه په بيع اکراه کي مجبور بائع خپل مشتري په دي خبره باندي نه مسلط کوي. چه هغه ئي د بل په لاس خرڅ کړي. په خلاف د بيوع فاسده، چي هغې کي د بائع د اړخه مشتري ته تسلط حاصليږي. صاحب د بنايه رحمه الله فرمائي. چه دا توپير ډير ښکاره دي.

## د بيع الوفاء حکم

قال رضي الله تعالى عنه: علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. ومن جعل البيع الجائز المعتاد بيعا فاسدا چي څوك جائز معتاد بيع ته فاسد وائي. يجعله كبيع المكره هغوی دا د بيع مکره پشان ګرځوي. حتى ينقض بيع المشتري من غيره تردي چي د بل په لاس د مشتري بيع ماتولي شي. لأن الفساد لفوات الرضا، ځکه چي فساد د رضامندئ د فوت کيدلو په وجه دي.

تشريح: په دي کي ،، من،، موصوله متضمن ده معنی د شرط ته. او ،،جعل البيع،، ددي صله ده. او ،، البيع،، د جعل مفعول اول دي. او ،، بيعاً فاسداً،، مفعول ثاني دي. او ،، يجعله،، محل د رفع دي. ځکه چي دا د ،، من ،، خبر دي. بيا د جائز او معتاد بيع نه مراد ،، بيع الوفاء،، ده. چه ددي صورت په قول د تاج الشريعة دا دي. چه بائع مشتري ته

اووئیل چه ما دا شئ ستا په لاس د هغه پور په عوض در خرڅ کړو. کوم چې ستا زما په ذمه دی، په دې شرط که زه قیمت درکړم، نو دا شئ به ماته راکوې. د بیع دا صورت جائز دی او که نه؟ په دې اړه کې د مشائخو اختلاف دی.

**تشریح:** علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي چه کومو عالمانو دا بیع فاسد ګرځولی ده. (یعنې مشائخ د بخارا، صدر شهید تاج الاسلام، ظهیرالدین، صدر شهید حسام الدین وغیره) هغوی دا بیع د مکره پشان ګرځولی ده. تردې چې په بیع الوفاء کې که مشتري شئ د بل په لاس خرڅ کړو. نو بیع به ماتولې شي. ځکه چې اوسه پورې د بائع رضامندي نه ده موجود شوې. لکه څنګه چې په بیع اکراه کې کیږي. نو د رضامندئ نه کیدو په وجه بیع فاسد ده.

وَمِنْهُمْ مَنْ جَعَلَهُ رَهْنًا لِقَصْدِ الْمُتَعَاقِدَيْنِ، او بعضو دا رهن ګرځولی دی. د متعاقدینو د قصد په وجه. وَمِنْهُمْ مَنْ جَعَلَهُ بَاطِلًا اعْتِبَارًا بِالْهَازِلِ او بعضو دا باطل ګرځولی ده. په ټوقمار باندې قیاس کاوه سره،

**تشریح:** او سید ابو شجاع سمرقندي، ابو علی سغدي، قاضي ابوالحسن، ماتریدي، او شیخ الاسلام عطاء بن حمزه رحمه الله وغیره دا رهن ګرځولی دی. ځکه چې د متعاقدینو مقسد هم دا وي. چه مبیع دده د ثمن په عوض کې مشتري سره بند دی. او هم دا په رهن کې کیږي. چه مرهون شئ مرتهن سره د پور په عوض کې بند وي. نو متعاقدینو کې اګرچه دا بیع سره تعبیر کړې دی. خو په دې سره ددوی غرض رهن دی. او اعتبار د معانیو او مقاصدو کیږي. او بعضو دا د بیع هازل (ټوقمار) پشان باطل ګرځولی دی.

وَمَشَايِخُ سَمَرْقَنْدَ رحمهم الله جَعَلُوهُ بَيْعًا جَائِزًا مُفِيدًا بَعْضَ الْأَحْكَامِ عَلَى مَا هُوَ الْمُعْتَادُ او مشائخو د سمرقند دا جائز، مفید د بعضو احکامو ګرځولی ده. په خلګو کې د رواج کیدلو په وجه. لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چې ددې اړتیا راپیښیږي.

**تشریح:** او مشائخو د سمرقند دې ته جائز وئیلی دي. چه دا د بیع او هبه وغیره نه علاوه په بعضو نورو احکامو کې مفید ده. یعنې مفید د انتفاع ده. ځکه چې د داسې بیع هم اړتیا واقع کیږي. ځکه چې په دې زمانه کې پور حسنه نه ملاویږي. نو په دې اړتیا سره دا بیع جائز او ګرځولی شوه. علامه مرغیناني رحمه الله هم دا قول اختیار کړې دی. چه دې اړخ ته په ،، الحاجة المعتاد،، الفاظو سره اشاره ده.

**په حقوق العباد کښې د اکراه حکم**

قَالَ (فَإِنْ كَانَ قَبَضَ الثَّمَنَ طَوْعًا) بیا که مکره په خوشحالئ سره ثمن باندې قبضه اوکړله. فَقَدْ أَجَازَ الْبَيْعَ) نو د بیع اجازت ئې ورکړو. لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِجَازَةِ كَمَا فِي الْبَيْعِ الْمَوْقُوفِ ځکه چې دا دلیل د اجازت دی. لکه څنګه چې بیع موقوف کې کیږي. وَكَذَا إِذَا سَلَّمَ طَائِعًا، دغه ډول که په خوشحالئ ئې اوسپارلو. بِأَنْ كَانَ الْإِكْرَاهُ عَلَى الْبَيْعِ لَا عَلَى الدَّفْعِ په دې طریقه چې اکاره په بیع باندې وي. په سپارلو باندې نه وي. لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِجَازَةِ، ځکه چې دا هم دلیل د اجازت دی.

**تشریح:** که مکره خرڅ کړو، د زبردستئ په وجه، او ددې قیمت ئې په خوشحالئ واخستلو. نو په خوشحالئ قیمت اخستل، بیع نافذ کول، او ددې نه راضي کیدل دي. ځکه چې ثمن په خوشحالئ قبلول د اجازت دلیل دی. لکه په بیع موقوف کې د مالك په ثمن باندې قبضه کول، دلالةً اجازت وي. او که اکراه صرف په عقد د بیع باندې وي. د مبیع په سپارلو باندې نه وي. او هغه مبیع په خوشحالئ اوسپاري. نو دا هم دلیل د اجازت دی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَكْرَهَهُ عَلَى الْهِبَةِ په خلاف ددې کله چې په هبه کاوه باندې اکراه شوې وي. وَلَمْ يَذْكُرِ الدَّفْعَ او سپارل ذکر نکړل. فَوَهَبَ بیا ئې دا هبه کړو. وَدَفَعَ او ورنې کړو. حَيْثُ يَكُونُ بَاطِلًا نو دا به باطل وي. لِأَنَّ مَقْصُودَ الْمُكْرِهِ الِاسْتِحْقَاقُ لَا مُجَرَّدُ اللَّفْظِ، ځکه چې دمکره مقصد استحقاق دی. خالي لفظ نه دی. وَذَلِكَ فِي الْهِبَةِ بِالدَّفْعِ وَفِي الْبَيْعِ



بِالْعَقْدِ عَلَى مَا هُوَ الْأَصْلُ، او دا په هبه کې سپارلو سره او بیع کې عقد سره کیږي. لکه څنګه چې هم دا اصل دی. فَدَخَلَ الدَّفْعُ فِي الْإِكْرَاهِ عَلَى الْهِبَةِ دُونَ الْبَيْعِ. نو په هبه باندې مجبوره کاوه کې به سپارل داخل وي. په اکراه د بیع کې به نه وي.

**تشریح:** په خلاف د هبه، که د یو شئ په هبه کاوه باندې مجبور کړې شو. او د سپارلو هیڅ ذکر نې اونکړو. نو ده هبه کړو. او هغه شئ نې ورکړو. نو عقد هبه به فاسد وي. ځکه چې د هبه په صورت کې د مکره مقصد خالي لفظ او صورت د عقد نه دی. بلکه دده مقصد دادې چه استحقاق ثابت وي. او هبه کې استحقاق هغه وخت ثابت شي. کله چې سپارل واقع شي. په خلاف د بیع، چې په دې کې اصل هم دادې چه صرف عقد سره استحقاق ثابت شي. (پاتې شوه په قبضه یا اجازت باندې توقف، نودا د عوراضاتو ځنې دی). نو په بیع باندې د اکراه کیدل سپارلو باندې اکراه نشوه. نو سپارل پخپل اختیار سره شو. چه دا دلیل د اجازت دی. او هبه کاوه باندې اکراه کاوه کې سپارل داخل شو.

قَالَ (وَإِنْ قَبَضَهُ مُكْرَهًا) و که ثمن باندې ئې قبضه د مجبورئ نه اوکړله. فَلَيْسَ ذَلِكَ بِإِجَازَةٍ نو اجازت نه دی. وَعَلَيْهِ رَدُّهُ إِنْ كَانَ قَائِمًا فِي يَدِهِ) او په ده باندې واپس کول واجب دي. که دده سره قائم وي. لِفَسَادِ الْعَقْدِ د عقد د فساد په وجه.

**تشریح:** او که بائع ثمن باندې قبضه د مجبورئ نه اوکړله. نو دا به اجازت نه وي. او په ده به واپس کول واجب وي. که هغه دده سره په دې حالت کې موجود وي. ځکه چې د اکراه په وجه عقد فاسد دی. او که ثمن هلاك شوې وي. نو دده به هیڅ نشي اخستلې. ځکه چې مکره سره دا ثمن امانت وو. ځکه چې ده هغې باندې د مشتري په اجازت سره قبضه کړې وه. او کله چې قبضه په اجازت د مالك وي. نو هغه موجب د ضمان هغه وخت وي. کله چې قبضه د تملك لپاره وي. حالانکه دلته کې بائع ثمن باندې قبضه تملك لپاره نه ده کړې. ځکه چې هغه خو ددې په قبضه کاوه مجبور وو. نو ثمن دده سره امانت شو. او د امانت په ضائع کیدلو سره ضمان نه راځي.

قَالَ (وَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي) و که مبیع هلاك شو. مشتري سره. وَهُوَ غَيْرُ مُكْرَهٍ حالانکه هغه مکره نه دی. ضَمِنَ قِيمَتَهُ لِلْبَائِعِ) نو هغه به بائع لپاره ددې د قیمت ضامن وي. مَعْنَاهُ وَالْبَائِعُ مُكْرَهٌ ددې مطلب دادې چه بائع مکره وو. لِأَنَّهُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ بِحُكْمِ عَقْدٍ فَاسِدٍ ځکه چې په حکم د عقد فاسد مبیع دده په ضمانت کې دی. (وَلِلْمُكْرَهِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُكْرِهَ إِنْ شَاءَ) و مکره لپاره اختیار دی. که غواړي مکره نه تاوان واخلي. لِأَنَّهُ آلَةٌ لَهُ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى الْإِتْلَافِ، ځکه چې دا دمکره آله ده. په هغه امر کې کوم چې اتلاف اړخ ته راجع دی. فَكَأَنَّهُ دَفَعَ مَالَ الْبَائِعِ إِلَى الْمُشْتَرِي نو ګویا چې مکره د مکره بائع مال مشتري ته ورکړو. فَيُضَمِّنُ أَيَّهُمَا شَاءَ كَالْغَاصِبِ وَغَاصِبِ الْغَاصِبِ، نو هغه چې په دوی کې د چا نه غواړي. تاوان واخلي. د غاصب او غاصب الغاصب پشان،

**تشریح:** بائع په زبردستئ یو شئ خرڅ کړو. او مشتري هغه د زبردستئ نه بغیر واخستلو. بیا هغه مشتري سره هلاك شو. نو مشتري به بائع ته ددې د قیمت تاوان ورکوي. ځکه چې دمکره بیع فاسد ده. او بیع فاسد کې هم مبیع مشتري باندې مضمون وي. خو مکره ته دا اختیار هم شته. چه چا په ده باندې زبردستي کړې وه. هغه نه د قیمت تاوان واخلي. ځکه چې د ترکومه پورې د هلاکاوه معنی موجود وي. هلته کې مکره (مجبور) ددې مکره آله وي. (اګرچه د کلام کیدلو په حیثیت سره هغه آله نه ده) ﴿لأن التكلم بلسان الغير لا يصح﴾ نو ګویا مکره د بائع (مکره) مال مشتري ته ورکړو. نو مکره ته اختیار دی. چه مکره او مشتري دواړو کې د چا نه غواړي. تاوان واخلي. لکه څنګه چې د غاصب او غاصب الغاصب په صورت کې مالك ته اختیار وي. که غواړي. د غاصب نه تاوان واخلي. او که غواړي. د غاصب الغاصب نه واخلي.

فَلَوْ ضَمِنَ الْمُكْرَهُ بيا كه ده د مكره نه تاوان واخستلو. رَجَعَ عَلَى الْمُشْتَرِي بِالْقِيمَةِ نو هغه به د مشترى نه قيمت واپس اخلى. لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْبَائِعِ، خكه چې هغه د بائع قائم مقام شو. وَإِنْ ضَمِنَ الْمُشْتَرِي او كه د مشترى نه ئې تاوان واخستلو. نَفَذَ كُلُّ شِرَاءٍ كَانَ بَعْدَ شِرَائِهِ نو هر هغه بيع به نافذ وى. كومه چې دده د شراء نه روسته شوې وى. لَوْ تَنَاسَخَتْهُ الْعُقُودُ لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالضَّمَانِ خكه چې هغه په تاوان ور كاوه ددې مالك شو. فَظَهَرَ او دا ښكاره شوه. أَنَّهُ بَاعَ مِلْكَهُ، چې ده خپل ملك خرخ كړې دې. وَلَا يَنْفُذُ مَا كَانَ لَهُ قَبْلَهُ او كومه بيع چې ددې نه وړاندې شوې ده. هغه به نه نافذ كيږي. لِأَنَّ الِاسْتِنَادَ إِلَى وَقْتِ قَبْضِهِ، خكه چې دا دده د قبضې وخت ارخ ته مستند دې. بِخِلَافِ مَا إِذَا أَجَازَ الْمَالِكُ الْمُكْرَهُ عَقْدًا مِنْهَا حَيْثُ يَجُوزُ مَا قَبْلَهُ وَمَا بَعْدَهُ په خلاف ددې كله چې مكره مالك په دې مختلف عقدونوكي يو عقد جائز كړې وى. چه (په دې سره به) مخكنى او روستنى واړه عقدونه نافذ كيږي. لِأَنَّهُ أَسْقَطَ حَقَّهُ خكه چې ده خپل حق ساقط كړو. وَهُوَ الْمَانِعُ او هم دا مانع وو. فَعَادَ الْكُلُّ إِلَى الْجَوَازِ، وَاللهُ أَعْلَمُ نو واړه عقدونه به جائز وى.

**تشريح:** اوس كه مكره د مكره نه تاوان واخستلو. نو مكره به مشترى نه د قبضه شوى شئ قيمت واپس اخلى. خكه چې مكره د ضمان ادا كاوه په ذريعه د بائع قائم مقام شو. خكه چې د ضمان والا شئ د ضمان د سبب د وخت نه د ضامن ملك جوړيږي. او كه مكره د مشترى نه تاوان واخستلو. نو دده د اخستلو نه روسته چې كوم خرخول واقع شو هغه به نافذ كيږي. خكه چې هغه په تاوان ور كاوه مالك شو. نو ښكاره شوه. چه هغه خپل ملك خرخ كړې دې. او كومه بيع چې د تاوان نه وړاندې شوې وى. هغه نه نافذ كيږي. خكه چې دا د هغې د قبضې وخت ارخ ته مستند دې. په خلاف ددې كه مكره مالك په دوى كې يوكس ته د عقد اجازت وركړو. نو مخكني او روستني ټولې بيع به نافذ وى. خكه چې ده خپل حق ساقط كړو. او دده حق مانع وو. نو واړه عقدونه جائز شو.

## په حقوق الله كښې د اكراه حكم

(فَصْلٌ): فصل: (وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى أَنْ يَأْكُلَ الْمَيْتَةَ أَوْ يَشْرَبَ الْخَمْرَ، كه مجبور كړې شو. په مردار خوړلو يا شراب څښلو باندې، إِنْ أُكْرِهَ عَلَى ذَلِكَ بِحَبْسٍ أَوْ ضَرْبٍ أَوْ قَيْدٍ په قيد كاوه يا وهلو، يا د هتكړئ په اچولو دهمكى ور كاوه سره، لَمْ يَحِلَّ لَهُ إِلَّا أَنْ يُكْرَهَ بِمَا يَخَافُ مِنْهُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْ عَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ، نو حلال به نه وى. مگر دا چې مجبور كړې شي په داسې دهمكئ سره، چې هغې سره خطره وى. د خپل ځان يا د يو اندام، فَإِذَا خَافَ عَلَى ذَلِكَ كله چې ددې يره وى. وَسِعَهُ أَنْ يُقْدِمَ عَلَى مَا أُكْرِهَ عَلَيْهِ) نو گنجائش شته. چه وړاوړاندې شى هغه شئ ته په كوم چې مجبور كړې شوې دې. وَكَذَا عَلَى هَذَا الدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ، او هم په دې حكم دى وينه، او د خنزير غوښه. لِأَنَّ تَنَاوُلَ هَذِهِ الْمُحَرَّمَاتِ إِنَّمَا يُبَاحُ عِنْدَ الضَّرُورَةِ كَمَا فِي الْمَخْمَصَةِ خكه چې ددې محرماتو خوراك د اړتيا په وخت مباح دې. لكه څنگه چې د مخمصه (سختې لوگې) په حالت كې دى. لِقِيَامِ الْمُحَرَّمِ فِيمَا وَرَاءَهَا، خكه چې ددې نه په ماسواء كې محرم دليل قائم دې. وَلَا ضَرُورَةَ إِلَّا إِذَا خَافَ عَلَى النَّفْسِ أَوْ عَلَى الْعُضْوِ، او اړتيا به هغه وخت وى. كله چې په ځان يا يو اندام باندې يره وى.

**تشريح:** په عنايه او بنايه وغيره شروح كې دى. چه د بنده گانو په حقوقو كې د واقع كيدلو اكراه حكم بيانولو نه روسته په دې فصل كې د هغه اكراه حكم ذكر كوى. كوم چې په حقوق الله كې واقع كيږي. او اول ئې خكه مقدم كړو. چه د بنده د زيات حاجت په وجه د بنده حق وړاندې وى. خو دا توجيه صحيح نه ده. خكه چې حقوق العباد كې د واقع كيدونكې اكراه حكم په دې فصل كې هم مذكور دې. لكه څنگه چې د مسلمان د مال هلاكيدلو په مسئله كې، او د غير په قتل باندې د اكراه په مسئله كې دى. نو د داسې قسمه مسائيلو په لحاظ سره چې دا كومه وجه ذكر كړې شوې ده. پوره نه پاتې كيږي. نو بهتره توجيه د غاية البيان ده. چه راتلونكې مسئلې د تيرو شوو مسئلو نه جلا د فصل په عنوان سره خكه بيانوى. چه وړاندې د هغه څيزونو



بيان وو. چه د هغې كول د اكراه نه وړاندې جائز دى. او ددې فصل مسئلې داسې نه دى. بلكه دا د اكراه نه وړاندې د گنجائش په حالت كې ممنوع دى.

**تشريح:** يوسړې د خنزير يا د مردار د غوښې په خوړلو، يا د شرابو او وينې څښلو باندې د جيل او وهلو او د قيد كاوه او بندولو يره او دهمكى ور كاوه باندې مجبور كړې شو. نو هغه لپاره ددې څيزونو خوراك صحيح نه دې. خكه چې ددې محرماتو د خوراك اباحت د اړتيا په وخت دى. او اړتيا هغه وخت دې. چه كله د ځان يا د يو اندام د هلاكت يره وى. نو كه يو كس د نفس قتلولو يا د يو اندام كټ كاوه يره ور كړله. او مجبوره ئې كړو. نو په دې صورت كې دده لپاره خوراك حلال دې. بلكه كه هغه ئې اونه خوري. او صبر اوكړي. او د ځان قرباني وركړي. نو گناهگار به وى. د امام مالك رحمه الله صحيح قول، امام شافعي رحمه الله او په يو روايت كې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دى. د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. چه نه گناهگاريږي. (د امام احمد رحمه الله دوهم روايت او د امام شافعي رحمه الله غير اصح قول هم دادى). خكه چې دې وخت دده لپاره خوړل رخصت دې. او نه خوړل عزيمت دې. نو د عزيمت اړخ اختيارولو باندې گناهگاريدل پكار نه دى؟

**جواب:** دادې. چه د حرمت د حكم نه د مجبورئ حالت مستثنى دې. د الله تعالى ارشاد دې ﴿وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ﴾ او د حرام شئ نه چې كوم شئ مستثنى وى. هغه به حلال وى. اوس كه هغه د حلال شئ د خوراك نه منع شى. او خپل ځان هلاك كړي. نو يقيناً چې گناهگار به وى.

حَتَّى لَوْ خِيفَ عَلَى ذَلِكَ بِالضَّرْبِ تردې كه په دې يره ور كړې شوه. په سختو وهلو سره، وَغَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ او دده په گمان كې هم دا خبره غالبه شوه. يُبَاحُ لَهُ ذَلِكَ نو دده لپاره داسې كول جائز دى. (وَلَا يَسَعُهُ أَنْ يَصْبِرَ عَلَى مَا تُوُعِّدَ بِهِ، او دده جزء: گنجائش به نه وى. چه په دې باندې صبر اوكړي. د كومې چې دهمكى وركړې شوې ده. فَإِنْ صَبَرَ حَتَّى أَوْقَعُوا بِهِ وَلَمْ يَأْكُلْ كه ده صبر اوكړو. تردې چې هغه داسې اوكړل. او ده او نه خوړل. فَهُوَ آثِمٌ نو گنهگار به وى. لِأَنَّهُ لَمَّا أُبِيحَ خكه چې هر كله دا شئ جائز كړې شو. كَانَ بِالِامْتِنَاعِ عَنْهُ مُعَاوِنًا لِغَيْرِهِ عَلَى هَلَاكِ نَفْسِهِ نو په منع كيدلو سره په خپل ځان هلا كاوه باندې د غير مددگار (او معاون) شو. فَيَأْثَمُ كَمَا فِي حَالَةِ الْمَخْمَصَةِ. نو گنهگار به وى. لكه څنگه چې په حالت د مخمصه (سخته لوږه) كې كيږي. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ لَا يَأْثَمُ چې گنهگار به نه وى. لِأَنَّهُ رُخْصَةٌ خكه چې دا خو رخصت دې. إِذِ الْحُرْمَةُ قَائِمَةٌ خكه چې حرمت اوس هم قائم دې. فَكَانَ آخِذًا بِالْعَزِيمَةِ. نو هغه په عزيمت باندې عمل كونكې شو. قُلْنَا: موږ دا وايو. حَالَةُ الِاضْطِرَارِ مُسْتَثْنَاةٌ بِالنَّصِّ چې حالت د مجبورئ خو په ذريعه د نص مستثنى دې. وَهُوَ تَكَلُّمٌ بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الثُّنْيَا او استثناء د مستثنى نه روسته د پاتې مانده تكلم دې. فَلَا مُحَرِّمَ نو محرم موجود نشو. فَكَانَ إِبَاحَةً لَا رُخْصَةً نو دا اباحت شو. رخصت نشو. إِلَّا أَنَّهُ إِنَّمَا يَأْثَمُ إِذَا عَلِمَ بِالْإِبَاحَةِ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ، خو گناهگار به هغه وخت وى. كله چې ده ته په دې حالت كې جائز كيدل معلوم وى. لِأَنَّ فِي انْكِشَافِ الْحُرْمَةِ خَفَاءً خكه چې د حرمت په ښكاره كيدلو كې پټ والى دې. فَيُعْذَرُ بِالْجَهْلِ فِيهِ كَالْجَهْلِ بِالْخِطَابِ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ أَوْ فِي دَارِ الْحَرْبِ حرمة نو په نه خبريدلو كې به معذور گنړلې شى. لكه په ابتداء د اسلام كې، يا دارالحرب كې چې په حكم نه معلوميدلو كې معذور وى.

**تشريح:** په دې تعبير باندې صاحب د نتائج رحمه الله دا اشكال كړې دې. چه مباح هغې ته وائى. چه د هغې د كاوه او نه كاوه دواړه طرفونه برابر وى. لكه څنگه چې په علم اصول كې ددې صراحت موجود دې. او كوم څه چې موږ وئيلى دى. په دې كې چې كله ده ته د ځان يا د يو اندام خطره وى. نو دده په حق كې د كاوه اړخ راجح، او د اصولو د كتابو د تصريح مطابق فرض دې. نو په دې باندې د مباح اطلاق كول د مذكوره تصريحاتو خلاف دې.

## مكره لپاره كلمه دكفر او د نورو گناخو كلماتو وئيلو حكم

قَالَ (وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى الْكُفْرِ بِاللهِ تَعَالَى وَالْعِيَاذُ بِاللهِ أَوْ سَبِّ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَيْدٍ أَوْ حَبْسٍ أَوْ ضَرْبٍ) كه مجبور كړې شو د الله تعالى په انكار كاوه باندې،، والعياذ بالله،، يا رسول الله ﷺ ته په ښكنځلو (او بد رد ونيلو) باندې، د هتكړو، يا قيد، يا د وهلو دهمكى ور كاوه سره، لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ إِكْرَاهًا حَتَّى يُكْرَهَ بِأَمْرٍ يَخَافُ مِنْهُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْ عَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ) نو دا به اكراه نه وى. تردې چې مجبور نكړې شى په داسې دهمكئ سره، چې هغې سره يره وى د خان، يا د يو اندام. لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ بِهَذِهِ الْأَشْيَاءِ لَيْسَ بِإِكْرَاهٍ فِي شُرْبِ الْخَمْرِ لِمَا مَرَّ، ځكه چې هركله ددې څيزونو دهمكى په شرابو څښلو كې اكراه نه ده. فَفِي الْكُفْرِ وَحُرْمَتُهُ أَشَدُّ أَوْلَى وَأَحْرَى. نو په كفر كې، د كوم حرمت چې سخت دى، په درجه اولى به اكراه نه وى. قَالَ (وَإِذَا خَافَ عَلَى ذَلِكَ) نو هركله چې ددې خطره وى. (وَسِعَهُ أَنْ يُظْهِرَ مَا أَمَرُوهُ بِهِ) نو گنجائش شته چې ښكاره كړى. هغه د كوم چې دوى حكم كړې دې. (وَيُوَرِّي)، او توريه اوكړى. (فَإِنْ أَظْهَرَ ذَلِكَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ) كه هغه دا ښكاره كړله. په داسې حالت كې، چه دده زړه په ايمان سره مطمئن دې. (فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ) نو په ده به گناه نه وى.

**تشريح:** كه يو مسلمان د قيد و بند او د وهلو ټكاوه په دهمكئ سره د كفر كلمې په ونيلو، او د نبى كريم ﷺ په شان مبارك كې گستاخانه الفاظ اوښكلو باندې مجبور كړې شو. نو دا اكراه نه ده. ځكه چې هركله په قيد وبند وغيره سره د شرابو په څښلو كې اكراه نه كيږى. نو كفر كوم چې په حرمت كې د هغې نه سخت دې. هغې كې به په طريق اولى اكراه نه وى. البته كه د نفس قتل، يا د يو اندام د پرې كاوه په وجه د كفر كلمې ونيلو باندې يا د نبى كريم ﷺ په شان كې په بد رد (او كنځلو) ونيلو باندې مجبور كړې شو. نو دده لپاره د توريه په طور پخپله ژبه د ونيلو گنجائش شته. په دې شرط چې دده زړه په ايمان مطمئن وى.

لِحَدِيثِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حَيْثُ ابْتُلِيَ بِهِ، د حضرت عمار بن ياسر رضی الله عنه حديث په وجه. كله چې هغوى په دې كې اخته شو. وَقَدْ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبى كريم ﷺ ددوى نه پوښتنه او كړو. {كَيْفَ وَجَدْتَ قَلْبَكَ؟ تا خپل زړه څنگه اوموندلو؟ قَالَ عرض ئې كړلو. مُطْمَئِنًّا بِالْإِيمَانِ، ايمان سره مطمئن. فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: هغوى ﷺ اوفرمائيل. فَإِنْ عَادُوا فَعُدْ،[۱] كه هغوى بيا داسې اوكړى. نو ته هم دغه ډول كوه. وَفِيهِ نَزَلَ قَوْلُهُ تَعَالَى په دې اړه كې نازل شو. د الله تعالى ارشاد،، {إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ مگر هغه نه په چا چې زبردستى اوكړې شوه. وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ} "الْآيَةَ". او د هغه زړه مطمئن وى په ايمان باندې

**تشريح:** د عمار رضی الله عنه د حديث تخريج حاكم په مستدرك كې، بيهقى په كتاب المعرفه كې، ابونعيم په الحليه كې، عبدالرزاق په مصنف كې، او ابن راهويه په مسند كې كړې دې. ﴿قال: أخذ المشركون عمار بن ياسر فلم يتركوه حتى سب النبي ﷺ و ذكر آلهتهم بخير ثم تركوه فلما أتى رسول الله ﷺ قال له ﷺ: ما وراءك؟ قال: شر يا رسول الله ﷺ ما تركت حتى نلت منك و ذكرت آلهتهم بخير قال: فكيف تجد قلبك؟ قال: مطمئناً بالإيمان قال: فإن عادوا فعد﴾، يعنى عمار بن ياسر رضی الله عنه مشركانو اونيولو. او تركومه پورې چې هغه د هغوى د بتانو تعريف او د نبى كريم ﷺ بد رد نه ووكړې. هغه وخته پورې هغوى هغه پرې نخودلو. هغه د نبى كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو. واقعه ئې بيان كړله. نبى كريم ﷺ پوښتنه اوكړو. هغه وخت ستا د زړه څه حالت وو؟ عرض ئې كړل، اې د الله رسوله ﷺ! زما په زړه كې ايمان مضبوط وو. نبى كريم ﷺ اوفرمائيل. كه مشركان بيا داسې اوكړى. نو ته هم دغه ډول كوه،،

### د توريه عقلى دليل

وَلِأَنَّ بِهَذَا الْإِظْهَارِ لَا يَفُوتُ الْإِيمَانُ حَقِيقَةً لِقِيَامِ التَّصْدِيقِ، او ځكه چې په دې ښكاره كاوه سره ايمان په حقيقت كې نه فوت كيږى. د تصديق د قيام په وجه، وَفِي الِامْتِنَاعِ فَوْتُ النَّفْسِ حَقِيقَةً په منع كيدلو كې په حقيقت كې د ځان

[۱] من حديثه أخرجه الحاكم فى المستدرک فى تفسيرسورة النحل (۳۵۷\۲)_



ختمېدل دى. فَيَسَعُهُ الْمَيْلُ إِلَيْهِ. نو دې اړخ ته د ميلان گنجائش شته. قَالَ (فَإِنْ صَبَرَ حَتَّى قُتِلَ) وكه ده صبر اوكړو. تردې چې قتل كړې شو. (وَلَمْ يُظْهِرِ الْكُفْرَ) خو ده كفر ښكاره نكړو. (كَانَ مَأْجُورًا) نو هغه ته به اجر ملاويږى.؛

**تشريح:** د ذكرشوې توريه عقلى دليل دې. ددې تقرير دادې، چه ايمان د ژبې د اقرار او د زړه د تصديق نوم دې، چه ددې ركن اصلى تصديق دې. كوم چې په مذكوره صورت كې قائم دې. نو په داسې ښكاره كاوه سره ايمان په حقيقت كې نه فوت كيږى. او په منع كيدلو كې حقيقت كې د ځان (نفس) تللو خطره وى. په دې وجه د كفر ښكاره كاوه گنجائش شته. خو كه هغه په دې حالت كې صبر اوكړى. او په ژبه كلمه د كفر اونه گرځوى. نو د ثواب مستحق به وى.

لِأَنَّ {خُبَيْبًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صَبَرَ عَلَى ذَلِكَ حَتَّى صُلِبَ ځكه چې حضرت خبيب رضی الله عنه په دې باندې صبر اوكړو. تردې چې په سولئ (پانسى) كړې شو. وَسَمَّاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيِّدَ الشُّهَدَاءِ، او نبى كريم ﷺ دوى په سيد الشهداء سره نومول (نامدار) كړل. وَقَالَ فِي مِثْلِهِ او د داسې ډول په حق كښې ئې اوفرمائيل. هُوَ رَفِيقِي فِي الْجَنَّةِ}[۱] هغه په جنت كې زما رفيق (او ملگرې) دې.

**تشريح:** علامه مرغينانى رحمه الله د حضرت خبيب رضی الله عنه په اړه كې څلور خبرې ذكركړې دى: ① هغه په دې باندې مجبور كړې شو. او هغه صبر اوكړو. ② هغوى ته سولئ (پانسى) وركړې شوه. ③ هغوى ته د سيد الشهداء لقب ملاؤ شو. ④ نبى كريم ﷺ د هغوى په حق كې ﴿هو رفيقي في الجنة﴾ اوفرمائيل. حالانكه د حضرت خبيب رضی الله عنه قصه د صحيح بخارى په كتاب الجهاد كې پوره تفصيل سره نقل ده. خو هغې كې مذكوره څلورو خبرو كې يوه هم نشته. د هغوى قصه كوم چې حضرت ابوهريره رضی الله عنه بيان كړې ده. د هغې لنډيز داده. چه نبى كريم ﷺ د حضرت عاصم بن ثابت رضی الله عنه په سردارئ كې د جاسوسئ په طور يو وړوكې شان لښكر روان كړو. چه هغې كې حضرت خبيب رضی الله عنه هم وو. په لاره كې د د مكې او عسفان په منځ كې قبيله هذيل بنولحيان دوى واړه راگير كړل. او حضرت عاصم بن ثابت رضی الله عنه ئې د اووه سړو سره شهيد كړو. او حضرت خبيب، او زيد بن الدثنة رضی الله عنهما او يو دريم سړې ئې مكې ته راوستل. هلته كې بنوالحارث بن عامر بن نوفل حضرت خبيب رضی الله عنه واخستلو. (ځكه چې حضرت خبيب رضی الله عنه د بدر په ورځ حارث بن عامر قتل كړې وو). نو هغه هغوى سره قيدى وو. تردې چې هركله دا خلگ د هغه په قتل باندې متفق شول. نو هغه ئې د حرم نه بهرته اويستلو. چه قتل ئې كړى. حضرت خبيب رضی الله عنه د شهادت نه وړاندې دوې (دوه) ركعته لمونځ اوكړو. بيا ئې دعا اوكړله. اې الله! دوى يو يو شمار كړه. او دوى پريشانه قتل كړه، او هيڅ څوك پاتې مه پرېږده. بيا ئې دا دوې (دوه) شعرونه اوونيل:

و لست أبالي حين أقتل مسلماً ۞ على أي شق كان لله مصرعي
و ذلك في ذات الإله و إن يشاء ۞ يبارك على اوصال شلو ممزع

هر گز نهيں پروانه شمع هدى كو غم ۞ راه خدا ميں پچهاڑا كسى پهلو
ميری يه جان سپرد هے جان آفريں كے ۞ كردے مرے هر عضو كو بركت سے جو هلوا

ددې نه روسته عتبه بن الحارث پاسيدو. او هغه ئې شهيد كړو.

**امراول اودويم** ۞ د بخارى په دې روايت كې نه د اكراه ذكر شته. او نه د سولئ كولو. البته امام واقدى پخپل مغازى كې په لفظ د بخارى مطولاً ذكر كاوه نه روسته د نوفل بن معاويه ديلى نه روايت كړې دې. ﴿قال: لما صلى خبيب رضی الله عنه الركعتين حملوه إلى خشبة فأوثقوه رباطاً قالوا له إرجع عن الإسلام قال: لا والله لا أفعل لو أن لي ما في الأرض جميعاً (إلى) فقالوا له واللات و العزى لئن لم تفعل لنقتلنك قال إن قتلي في الله لقليل﴾ په دې روايت كې كرښه راښكلې شوې الفاظ په

[۱] قال الزيلعى رحمه الله قلت غريب: وقتل خبيب رضی الله عنه فى (صحيح البخارى) فى مواضع ولس فيه أنه صلب ولا أنه أكره ولا أن النبى ﷺ سماه سيدالشهداء ولا قال فيه هورفيقى فى الجنة(نصب الرأية:۳۸۲\۴)_

اکراه او په سولۍ ور کاوه باندې دلالت کوي.

**امر سوم:** يعنی د مذکوره لقب په اړه کې هم دا مشهوره ده.چه نبی کريمﷺ د احد په ورځ حضرت حمزه بن عبدالمطلبؓ ته سيدالشهداء فرمائيلی وو.لکه څنګه چې حاکم په مستدرك کې په كتاب الفضائل کې حضرت جابر او علیؓ نه او طبرانی په معجم کې د حضرت علیؓ نه روايت کړې دې.

**امر چهارم:** حضرت خبيبؓ اګرچه د نبی کريمﷺ د جنت رفيق ( او ملګرې) دې.خو دا کلمه خاص کر ددوی په حق کې ثابته نه ده.بلکه د بعضو نورو صحابوؓ په حق کې ثابت ده.

> وَلِأَنَّ الْحُرْمَةَ بَاقِيَةٌ،او څکه چې حرمت پاته دې.وَالِامْتِنَاعُ لِإِعْزَازِ الدِّينِ عَزِيمَةٌ،او د دين د عزت په خاطر منع کيدل عزيمت دې.بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ لِلِاسْتِثْنَاءِ په خلاف د تيرې شوې مسئلې د استثناء په وجه.

**تشريح:** په صبر کاوه باندې د اجر مستحق کيدلو عقلی دليل دې.چه دکفر د قباحت په وجه حرمت پاته دې نو هغه اکراه باندې صبر کاوه سره د محرم شرعی نه ځان ساتونکې او د شرعی نهی تعميل کونکې شو.اود دين د اعزاز په خاطر د کلمۀ کفر ښکاره کاوه نه منع کيدل د مضبوطې حوصلې د ميړه دې.او په دې کې هيڅ شك نشته.چه د رخصت اختيارولو په نسبت عزيمت باندې عمل کول افضل دی.په خلاف د مردارې خوړلې. اود شرابو څښلو ،چه په دې کې د استثناء ﴿إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ﴾ په وجه اباحت اوشو.

**سوال:** په «لأن الاستثناء من التحريم إباحة» دليل باندې اعتراض کيږی.چه لکه څنګه د مردارې په مسئله کې د مذکوره استثناء په ذريعه د اړتيا حالت مستثنی دې.دغه ډول دلته کې هم د ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ﴾ استثناء په ذريعه حالت د اکراه هم مستثنی دې.نود مردارې د خوړلو او د شرابو څښلو پشان د کفر کلمه جاری کول هم مباح کيدل پکار دی ؟

**جواب:** دادې چه آيت کې تقديم تاخير دې.تقدير د کلام داسې دې. «من كفر بالله من بعد إيمانه و شرح بالكفر صدرا فعليهم غضب من الله و لهم عذاب عظيم إلا من أكره و قلبه مطمئن بالإيمان» نو د اکراه په حالت کې الله تعالی کلمه د کفر جاری کول مباح نکړله.بلکه په دې حالت کې ئې هغوی نه عذاب او غضب لرې کړو.اود غضب په نفی سره چې کوم د حرمت حکم دې عدم حرمت نه لازميږی.څکه چې د عدم حکم د ضروريات نو څنې عدم علت نه دې.لکه چې د مسافر او مريض په حق کې د رمضان حاضريدلو سبب موجود دې.او حکم متاخر دې.

## مکره لپاره د مسلمان ته د نقصان رسولو حکم

> قَالَ ﴿وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى إتْلَافِ مَالِ مُسْلِمٍ بِأَمْرٍ يَخَافُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْ عَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ﴾ که مجبور کړې شو.د يو کس مال هلاکاوه باندې.په داسې دهمکئ سره.چې هغې سره خطره وی.د خپل ځان يا د يو اندام. وَسِعَهُ أَنْ يَفْعَلَ ذَلِكَ نو ګنجائش شته چه اوکړی. لِأَنَّ مَالَ الْغَيْرِ يُسْتَبَاحُ لِلضَّرُورَةِ كَمَا فِي حَالَةِ الْمَخْمَصَةِ څکه چې د غير مال مباح کيږی.د اړتيا په وجه.لکه څنګه چې د مخمصه ( سختې لوګې) په حالت کې دې. وَقَدْ تَحَقَّقَتْ او اړتيا متحقق شو. ﴿وَلِصَاحِبِ الْمَالِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُكْرِهَ﴾ او د مال مالك ته اختيار دې چه مکره نه تاوان واخلی. لِأَنَّ الْمُكْرَهَ آلَةٌ لِلْمُكْرِهِ فِيمَا يَصْلُحُ آلَةً لَهُ څکه چې مکره آله وی د مکره په هغه څيزونو کې ،په کومو کې چې هغه آله کيدای شی. وَالْإِتْلَافُ مِنْ هَذَا الْقَبِيلِ او مال هلاکول هم ددې قبيلې څنې دی.

**تشريح:** که د نفس په قتلولو يا د يو اندام کټ کاوه په دهمکئ سره د يو مسلمان مال هلاکاوه باندې مجبور کړې شو نو دده لپاره د داسې کاوه ګنجائش شته څکه چې د اړتيا په وجه د غير مال جائز کيږی.لکه څنګه چې په حالت د مخمصه ( د سختې لوګه) کې کيږی.او دلته کې هم اړتيا متحقق شو.چه ځان بچ کول دی نود غير مال هلاکولې شی اوکه هلاك ئې نکړی.بلکه په تکليف باندې صبر اوکړی.نو ثواب به ملاويږی.بيا د مال مالك لکه څنګه چې د مکره نه تاوان اخستې شی.هم دغه ډول هغه د مکره نه هم اخستې شی.څکه چې دا وړاندې معلومه شوه چه افعالو کې فاعل د حامل لپاره آله کيدای شی.او مال هلاکول هم د افعالو د



قبيلې څنې دی.نو ګويا مکره د مکره په ذريعه د فلانی مال هلاك کړو.نو هغه د مکره نه تاوان اخستې شی «فيما يصلح آلة له» ونيلو سره د خوراك، تکلم، او وطی نه احتراز دې.چه په دې کې مکره د مکره آله نشی جوړيدې. «إذا الأكل بفم الغير و التكلم بلسان الغير لا يتصور»

## مکره لپاره د قتل کولو حکم

> ﴿وَإِنْ أَكْرَهَهُ بِقَتْلِهِ عَلَى قَتْلِ غَيْرِهِ﴾ که مجبور کړې شو د قتل په دهمکئ سره.د بل کس په قتلولو باندې ﴿لَمْ يَسَعْهُ أَنْ يُقْدِمَ عَلَيْهِ﴾ نو هغه لپاره ګنجائش نشته.چه د هغه په قتل باندې اقدام اوکړی. ﴿وَيَصْبِرُ حَتَّى يُقْتَلَ﴾ بلکه صبر دې اوکړی.ترڅو چې پخپله قتل کړې شی. ﴿فَإِنْ قَتَلَهُ﴾ که هغه ئې مسلمان کړو. ﴿كَانَ آثِمًا﴾ نو ګناهګار به وی. لِأَنَّ قَتْلَ الْمُسْلِمِ مِمَّا لَا يُسْتَبَاحُ لِضَرُورَةٍ مَا څکه چې مسلمان قتلول په هيڅ يو اړتيا سره هم نه جائز کيږی. فَكَذَا بِهَذِهِ الضَّرُورَةِ نو په دې اړتيا سره به هم جائز نه وی. قَالَ ﴿وَالْقِصَاصُ عَلَى الْمُكْرِهِ إنْ كَانَ الْقَتْلُ عَمْدًا﴾ و قصاص به په مکره وی.که قتل عمداً وی. قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ،[1] چې دا د طرفينو رحمهما الله په نيز دی. وَقَالَ زُفَرُ: امام زفر رحمه الله فرمائی. يَجِبُ عَلَى الْمُكْرَهِ. چې په دواړو به واجب وی. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: لَا يَجِبُ عَلَيْهِمَا. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجِبُ عَلَيْهِمَا

**تشريح:** او که د نفس قتلولو په ذهمکئ سره د يو مسلمان په قتل باندې مجبور کړې شو.نو هغه ته د قتلولو ګنجائش نشته.که قتل ئې کړی.نو ګناهګار به وی.څکه چې مسلمان قتلول په هيڅ حالت کې هم جائز نه دی.په دې وجه که ده په قصد سره قتل کړو.نو اوس به ددې قصاص په چا واجب وی ؟ په دې کې د عقلی ويش په لحاظ څلور احتماله دی.يا به خو په اکراه کونکی او مکره دواړو باندې واجب وی.يا به په دوی کې په يو هم واجب نه وی.يا به صرف په مکره باندې واجب وی.په دې کې هر يو احتمال يو نه يو امام اخستې دې.لکه چې آئمه ثلاثه رحمهم الله د ړومبی احتمال قائل دی.او دوهم احتمال د امام ابويوسف رحمه الله قول دې.او دريم احتمال د طرفينو رحمهما الله قول دې.او څلورم احتمال د امام زفر رحمه الله قول دې.

## د امام زفر او طرفينو رحمهم الله دليل

> لِزُفَرَ: امام زفر رحمه الله دليل دادې. أَنَّ الْفِعْلَ مِنْ الْمُكْرَهِ حَقِيقَةً وَحِسًّا، چې فعل د قتل مکره نه موجود شوې دې.حقيقتاً هم او حساً هم. وَقَرَّرَ الشَّرْعُ حُكْمَهُ عَلَيْهِ او شريعت ددې حکم هم په ده باندې قائم ساتلې دې. وَهُوَ الْإِثْمُ او هغه حکم د ګناه دې. بِخِلَافِ الْإِكْرَاهِ عَلَى إتْلَافِ مَالِ الْغَيْرِ په خلاف د غير مال هلاکاوه باندې د اکراه کولو. لِأَنَّهُ سَقَطَ حُكْمُهُ څکه چې ددې حکم ساقط شو. وَهُوَ الْإِثْمُ او هغه ګناه ده. فَأُضِيفَ إلَى غَيْرِهِ، نو هغه بل اړخ ته مضاف شو. وَبِهَذَا يَتَمَسَّكُ الشَّافِعِيُّ فِي جَانِبِ الْمُكْرَهِ، امام شافعی رحمه الله هم د مکره اړخ کې ددې نه دليل نيسی. وَيُوجِبُهُ عَلَى الْمُكْرِهِ أَيْضًا او قصاص په اکراه کونکی باندې هم واجب کوی. لِوُجُودِ التَّسْبِيبِ إلَى الْقَتْلِ مِنْهُ، دده د اړخه د قتل سبب موجود کيدلو په وجه. وَلِلتَّسْبِيبِ فِي هَذَا حُكْمُ الْمُبَاشَرَةِ عِنْدَهُ كَمَا فِي شُهُودِ الْقِصَاصِ، او د امام شافعی رحمه الله په نيز داسې صورت کې سبب باندې د راپورته کاوه حکم د فعل کاوه پشان دې.لکه څنګه چې د قصاص په ګواهانو کې کيږی.

**تشريح:** د امام زفر رحمه الله دليل دادې.چه د قتل د فعل وجود هم دده نه شوې دې.حقيقتاً هم او حساً هم.او شريعت هم ددې قتل حکم هم په ده باندې قائم ساتلې دې.چه هغه ګناهګاريږی.په مکره باندې د قصاص د وجوب په اړه کې .د امام شافعی رحمه الله دليل هم دادې.پاتې شو په اکراه کونکی باندې د قصاص وجوب، نو

[1] القول الراجح هو قول الطرفين كذا فى الخانية (٤/٤١٦) وردالمختار (٥/٩٤) ومجمع الانهر (٤/٤٤) والدرالمنتقى (٤/٤٥) نقلاً عن القول الراجح (٢/٢٤٩)-

هغه ځکه دي چه د قتل سبب هم هغه جوړ شوي دي. ځکه چي حامل او سبب هم هغه دي. او په داسي صورت کي د امام شافعي رحمه الله په نيز د تسبيب حکم هم د مباشرت دي.

وَلِأَبِي يُوسُفَ او د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادي. أَنَّ الْقَتْلَ بَقِيَ مَقْصُورًا عَلَى الْمُكْرَهِ مِنْ وَجْهٍ نَظَرًا إِلَى التَّأْثِيمِ، چي حکم د قتل په يوه وجه مکره باندي کمي (او نقصان) پاتې شو. د ګناهګاريدلو په لحاظ، وَأُضِيفَ إِلَى الْمُكْرِهِ مِنْ وَجْهٍ نَظَرًا إِلَى الْحَمْلِ او په يوه وجه اکراه کونکي اړخ ته منسوب شو. د حامل او سبب کيدلو په لحاظ سره. فَدَخَلَتِ الشُّبْهَةُ فِي كُلِّ جَانِبٍ. نو په هر اړخ کي شبه پيدا شوه.

**تشريح:** د امام ابويوسف رحمه الله دليل دادي چه قصاص من وجه مکره اړخ ته مضاف دي. مطلب دادي چه هغه مباشر (او فاعل) د قتل دي. او من وجه اکراه کونکي اړخ ته دي. ځکه چي هغه حامل او سبب دي. نو د دواړو طرفونو ته شبه واقع شوه. نو په دوی کي به په هيڅ چا قصاص نه وي. بلکه د هغوی د مال څخه به ديت ورکولي شي.

وَلَهُمَا او د طرفينو رحمهما الله دليل دادي. أَنَّهُ مَحْمُولٌ عَلَى الْقَتْلِ بِطَبْعِهِ إِيثَارًا لِحَيَاتِهِ چي هغه قتلولو باندي د طبعيت په تقاضي سره راضي کړي شوي دي. خپل ژوند ته ترجيح ور کاوه سره. فَيَصِيرُ آلَةً لِلْمُكْرِهِ فِيمَا يَصْلُحُ آلَةً لَهُ نو هغه به د اکراه کونکي آله وي. په داسي شي کي چي هغې کي آله کيداې شي. وَهُوَ الْقَتْلُ بِأَنْ يُلْقِيَهُ عَلَيْهِ او هغه قتل دي. په دي طريقه چي قتل هغه سربيره راواړوی.

**تشريح:** د طرفينو رحمهما الله دليل دادي چه مکره د بل کس په قتلولو باندي د طبعيت په تقاضي سره راضي کړي شوي دي. چه هغه خپل ژوند پاته اوساتي. او کوم چي په طبعيت سره په يو فعل باندي محمول وي. هغه آله وي. ځکه آله دي ته وائي. چه بالطبع عمل اوکړي. لکه توره، چي ددي طبعيت پرې کول دي. کله چي دا په يو محل کي استعمال کړي شي. دغه ډول د اور طبعيت سوزول دي. او د اوبو طبعيت غرق کول دي. هرکله چي دا خبره ده. نو د طبعيت په تقاضه باندي تللو کي آلي سره مشابهت اوشو. او دا ښکاره ده. که قاتل خپله آله يعني توره د يو سړي په نفس باندي په ظلم سره استعمال کړي. او قتل ئي کړي. نو قاتل باندي قصاص واجبيږي. نو هم دغه ډول به مکره باندي قصاص واجب وي. ځکه چي مکره په داسي شي کي دده آله شو. په کوم چي دي آله جوړيدې شي. او هغه قتل دي. په دي طريقه چي قتل دده سربيره واچوي. بهرحال په مکره به نه قصاص وي. نه به ديت وي. او نه کفاره. ځکه چي فعل فاعل اړخ ته مضاف وي. آلي اړخ ته مضاف نه وي.

وَلَا يَصْلُحُ آلَةً لَهُ فِي الْجِنَايَةِ عَلَى دِينِهِ او پخپل دين باندي جنايت کاوه کي د هغه آله نشي کيدي. فَيَبْقَى الْفِعْلُ مَقْصُورًا عَلَيْهِ فِي حَقِّ الْإِثْمِ نو فعل د قتل د ګناه په حق کي مکره باندي تاوان پاتې شو. كَمَا نَقُولُ فِي الْإِكْرَاهِ عَلَى الْإِعْتَاقِ، لکه څنګه چي ته آزادولو باندي اکراه کاوه کي وائي. وَفِي إِكْرَاهِ الْمَجُوسِيِّ عَلَى ذَبْحِ شَاةِ الْغَيْرِ او لکه څنګه چي مجوسي باندي د غير وزه ذبح کاوه باندي اکراه کاوه کي وائي. يَنْتَقِلُ الْفِعْلُ إِلَى الْمُكْرِهِ فِي الْإِتْلَافِ دُونَ الذَّكَاةِ چي د هلا کاوه په حق کي به فعل اکراه کونکي اړخ ته منتقل کيږي. د ذبح کاوه په حق کي به نه کيږي. حَتَّى يَحْرُمَ تردې چي ددې خوړل به حرام وي. كَذَا هَذَا نو هم دغه ډول دلته کي هم دی.

**تشريح:** د سوال مقدر خواب دي سوال دادي. که مکره آله وي. نو د قتل پشان به ګناه هم مکره اړخ ته مضاف کيدله. حالانکه داسي نه ده؟

**جواب:** دادي چه مکره پخپل دين باندي جنايت کاوه کي د اکراه کونکي آله نشي کيدي. ځکه چي قتل کي دوي (دوه) شيان دی. يو د مقتول سټ کټ کول. په دي کي اکراه کونکي مکره لره خپله آله جوړه کړي ده. او په دي کي هغه آله کيداې شي. دوهم د قتل نه ګناه لازميدل. په دي کي هغه د اکراه کونکي آله نشي جوړيدې. ځکه چي اکراه کونکي هغه په دي وجه مجبور کړي دي. چه هغه پخپل دين کي جنايت اوکړي. «ولو انتقل ذالك إلى المكره لتحقق خلاف المكره» نو فعل د قتل د فعل په طور اکراه کونکي اړخ ته مضاف شو. او د



ګناه په طور مکره اړخ باندي جرم شو. يعني پخپله به مکره ګناهګار وي. لکه څنګه چي په اعتاق باندي د اکراه مسئله ده. چه مثلاً زيد خالد د خپل غلام آزادولو باندي مجبور کړو. او خالد خپل غلام آزاد کړو. نو ونيلي شي. چه د هغه آزادول په دي حيثيت چي په دي کي د غلام ماليت هلاکول دی اکراه کونکي اړخ ته به منتقل کيږي. تردې چي اکراه کونکي (زيد) به د غلام د قيمت ضامن وي. او د آزادولو د تکلم په حيثيت سره به مکره (خالد) باندي تاوان وی. تردې چي د غلام ولاء به هم ده ته ملاويږي. دغه ډول د مسلمان د يو مجوسي لره د بل کس وزه ذبح کاوه باندي د مجبور کاوه په مسئله کي چي ته وائي. چه د هلا کاوه فعل به د اکراه کونکي (مسلمان) اړخ ته مضاف وي. تردې چي هغه د به دوزه د قيمت ضامن وي. خو ذبح به هغه اړخ ته مضاف نه وي. بلکه هغه به مکره (مجوسي) باندي جرم وي. تردې چي ددې خوړل به حرام وي. نو هم دغه ډول دلته کي د قتل حکم دي.

## د مکره د طلاق او اعتاق حکم

قَالَ (وَإِنْ أَكْرَهَهُ عَلَى طَلَاقِ امْرَأَتِهِ) که مجبور کړي شو د خپلي ښځي په طلاق ورکولو، (أَوْ عِتْقِ عَبْدِهِ) يا د خپل غلام په آزادولو، (فَفَعَلَ) او هغه اوکړل. (وَقَعَ مَا أُكْرِهَ عَلَيْهِ عِنْدَنَا) نو واقع کيږي به هغه په کوم چي دې مجبور کړي شوي دي. زموږ په نيز. خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رحمه الله، وَقَدْ مَرَّ فِي الطَّلَاقِ. اودا په کتاب الطلاق کي تير شو. قَالَ (وَيَرْجِعُ عَلَى الَّذِي أَكْرَهَهُ بِقِيمَةِ الْعَبْدِ) او رجوع به کوي په هغه کس باندي چاچه دې مجبور کړي دي. د غلام په قيمت، لِأَنَّهُ صَلَحَ آلَةً لَهُ فِيهِ مِنْ حَيْثُ الْإِتْلَافُ ځکه چي مکره په دي کي په حيثيت د هلاکت د اکراه کونکي آله کيداې شي. فَيُضَافُ إِلَيْهِ، نو هلاکول هم دده اړخ ته مضاف شو. فَلَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ مُوسِرًا كَانَ أَوْ مُعْسِرًا، نو مکره ته اختيار دي. چه د اکراه کونکي نه تاوان واخلي. که توانګر وي او که غريب وي.

**تشريح:** که ښځي ته په طلاق ور کاوه يا د غلام په آزادولو باندي مجبور کړي شو او هغه طلاق ورکړو. يا ئي غلام آزاد کړو. نو زموږ په نيز به دا امور واقع کيږي. د امام شافعي رحمه الله په دي کي اختلاف دي. چه ددې تفصيل په کتاب الطلاق کي تير شوي دي. د آزادئ په صورت کي به مکره د اکراه کونکي نه د غلام قيمت اخلي. ځکه چي د هلاکت په حق کي مکره د اکراه کونکي آله کيداې شي. نو هلاکت به هم هغه اړخ ته منسوب کيږي. او دا ضمان چونکه ضمان د هلاکت دي. چه دا په مالدارئ او غريبئ سره نه مختلف کيږي. په دي وجه به د غلام قيمت اخلي. که اکراه کونکي توانګر او که غريب وي.

**سوال:** دلته په اکراه کونکي باندي تاوان راوستل پکار نه دی. ځکه چي دده هلاکول په داسي عوض سره دی. چه هغه مکره ته حاصل شو. او هغه د غلام ولاء ده. او کوم هلاکت چي عوض سره وی. هغه د نه هلاکيدلو په مرتبه کي وی؟

**جواب:** دا هغه وخت کيږي. کله چي دا عوض مال وی. لکه که يوکس د غير په طعام خوړلو باندي مجبور کړي شو. او هغه اوخوړلو. نو په اکراه کونکي باندي ضمان نه وی. ځکه چي مکره ته د هغې عوض ملاؤ شو. يا دا عوض د مال په حکم کي وی. لکه منافع د بضع کله چي دا د اکراه په وجه هلاک کړي. نو مکره باندي ضمان نه وی. ځکه چي منافع د بضع په وخت د دخول مال شمارلي کيږي. او مذکوره ولاء نه مال دي. او نه د مال په حکم کي دي. بلکه هغه خو مرتبه د نسب کي دي. او نسب مال نه دي.

وَلَا سِعَايَةَ عَلَى الْعَبْدِ او په غلام به سعايت (او مزدوري) نه وی. لِأَنَّ السِّعَايَةَ إِنَّمَا تَجِبُ لِلتَّخْرِيجِ إِلَى الْحُرِّيَّةِ ځکه چي سعايت خو آزادئ اړخ ته د وتلو،

**تشريح:** او په مذکوره غلام باندي به سعايت واجب نه وی. ځکه چي سعايت به دي وجه واجبيږي. چي غلام ددې حالت اوځي. او آزادئ اړخ ته راشي. لکه څنګه چي د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دي. چه (ددوی په نيز مستسعی غلام په مرتبه د مکاتب دي). او دلته کي غلام د غلامئ نه آزادئ اړخ ته راوتلي دي. نو دده دوباره

د غلامۍ نه اوښكل ناممكن دى. ازادۍ اړخ ته د وتلو مثال مشترك غلام دې. كله چې دا يو شريكوال ازاد كړي نو دده نه د سعايت يا تضمين، يا د شريك د عتق په ذريعه سره آزادۍ اړخ ته د وتلو اړتيا وى.

أَوْلِتَعَلُّقِ حَقِّ الْغُرَمَاءِ يا د غيرحق متعلق كيدلو په وجه واجبيږى. وَلَمْ يُوجَدْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا، اوپه دې كې يوه خبره هم نه ده موجود شوې. وَلَا يَرْجِعُ الْمُكْرَهُ عَلَى الْعَبْدِ بِالضَّمَانِ او اكراه كونكې ددې غلام نه تاوان واپس نشى اخستې. لِأَنَّهُ مُؤَاخَذٌ بِإِتْلَافِهِ. ځكه چې اكراه كونكې خو ددې په هلاكاوه كې نيولې كيږى.

تشريح: يا سعايت په دې وجه واجبيږى. چه دده سره د غير حق متعلق دې. لكه څنګه چې د صاحبينو رحمهما الله قول دې لكه مثلاً مريض خپل مديون غلام آزاد كړى نود قرضخواهانو په وجه غلام باندې سعايت واجبيږى. دغه ډول كه راهن مرهون غلام آزاد كړى په داسې حال كې چې هغه غريب دې. نود مرتهن د حق په وجه غلام باندې سعايت واجبيږى. او دلته په دې دواړو خبرو كې يوه خبره هم نشته. نو سعايت به واجب نه وى. بيا اكراه كونكې ددې غلام نه خپل تاوان واپس نشى اخستلې. ځكه چې اكراه كونكې ددې په هلاكت كې پخپله ګرفتار دې.

قَالَ (وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ مَهْرِ الْمَرْأَةِ إِنْ كَانَ قَبْلَ الدُّخُولِ) ود اكراه كونكى څخه به د ښځې نصف مهر واپس اخلى. كه طلاق د صحبت نه وړاندې وى. وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي الْعَقْدِ مُسَمًّى او كه په عقد كې مسمى نه وى. يَرْجِعُ عَلَى الْمُكْرَهِ بِمَا لَزِمَهُ مِنَ الْمُتْعَةِ نو كومه متعه چې دده په ذمه لازم شوې ده. هغه به د اكراه كونكى نه اخلى. لِأَنَّ مَا عَلَيْهِ كَانَ عَلَى شَرَفِ السُّقُوطِ ځكه چې كوم مهر دده په ذمه دې. هغه د ساقطيدلو په غاړه لګيدلې وو. بِأَنْ جَاءَتِ الْفُرْقَةُ مِنْ قِبَلِهَا په دې طريقه چې فرقت ( او جدائى ) د ښځې د اړخه راځى. وَإِنَّمَا يَتَأَكَّدُ بِالطَّلَاقِ او مهر د طلاق په وجه موكد شوې دې. فَكَانَ إِتْلَافًا لِلْمَالِ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ نو په دې طريقه دا مال هلاكول شو. فَيُضَافُ إِلَى الْمُكْرَهِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ إِتْلَافٌ. نو د هلاكت په حيثيت سره به اكراه كونكى اړخ ته مضاف وى. بِخِلَافِ مَا إِذَا دَخَلَ بِهَا په خلاف ددې كله نې چې صحبت كړې وى. لِأَنَّ الْمَهْرَ قَدْ تَقَرَّرَ بِالدُّخُولِ لَا بِالطَّلَاقِ ځكه چې مهر مقرر كيدل د دخول په وجه شو. د طلاق په وجه نشو.

تشريح: او د طلاق په صورت كې به د اكراه كونكى نه د مهرمسمى نصف اخلى په دې شرط چې طلاق د دخول نه وړاندې وى. او كه په عقد د نكاح كې مهر مسمى نه وى. نو كومه متعه چې د مكره په ذمه لازم وو. ددې مطلب دادې چه شايد ( كيداى شى ) فرقت ( او جدائى ) د ښځې د اړخه واقع شى. خو كله چې طلاق واقع شو نو مهر موكد شو. نو د مال دا هلاكت به اكراه كونكى اړخ ته منسوب وى. او مكره به دده نه د نصف مهر اخستلو حقدار وى. خو كه هغه وطى كړې وى. نو د اكراه كونكى نه هيڅ هم نشى اخستلې. ځكه چې اوس مهر د وطى په وجه موكد شوې دې. د طلاق په وجه نه دې موكد شوې. نو صرف د ملك نكاح هلاكت پاتې شو او ملك د نكاح ( په وخت د وتلو ) مال نه دې. او كوم شئ چې مال نه وى. د هغې ضمان مال سره نه كيږى. امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دى. البته د امام شافعي رحمه الله په نيز د دخول نه روسته د طلاق په صورت كې اكراه كونكې د مهر مثل ضامن وى.

### مكره په طلاق يا د آزادولو وكيل كولو باندې د مجبوره كولو حكم

(وَلَوْ أُكْرِهَ عَلَى التَّوْكِيلِ بِالطَّلَاقِ كه مجبور كړې شو په طلاق وركولو، وَالْعَتَاقِ يا آزادولو لپاره په وكيل كاوه باندې، فَفَعَلَ الْوَكِيلُ او وكيل داسې اوكړل.

تشريح: يو كس يو سړې مجبور كړو چه خپلې ښځې ته د طلاق وركولو. يا د خپل غلام آزادولو لپاره وكيل ... هغه وكيل كړو او وكيل د هغه ښځې ته طلاق وركړو. يا نې غلام آزاد كړو. نو د قياس په رو سره دا



وكالت جائز نه دې. ( نو د طلاق يا عتاق وقوع به نه كيږى. ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دى ) ځكه قاعده كليه ده. چه هر هغه عقد چې هغې كې هزل ( ټوقې ) موثر وى. هغې كې اكراه هم موثر كيږى. او په كوم كې چې هزل ( ټوقه ) موثر نه وى. هغې كې اكراه نه موثر كيږى. او وكالت په هزل سره باطليږى. نو په اكراه سره به هم باطليږى.

جَازَ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً جائز دى. لِأَنَّ الْإِكْرَاهَ مُؤَثِّرٌ فِي فَسَادِ الْعَقْدِ، ځكه چې اكراه كول اثر غورزوى. د عقد په فساد كې، وَالْوَكَالَةُ لَا تَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ، او وكالت په فاسد شرطونو سره نه باطليږى.

تشريح: خو استحساناً جائز ده. وجه د استحسان داده. چه اكراه سره عقد فاسديږى. نو ګويا شرط فاسد شو. او وكالت په شروط فاسده سره نه فاسديږى. نو په اكراه سره به هم نه فاسديږى. اكراه د شرط فاسد پشان كيدل ځكه دى. چه په دې سره رضامندى نه پاتې كيږى. او اختيار فاسديږى. نو داسې شوه. لكه چې ده فاسد شرط اولګولو. او شرط فاسد د عقد منعقد كيدلو نه مانع نه وى. بلكه مفسد د عقد وى. پاتې شو په فاسد شرطونو سره وكالت نه فاسديدل، نو دا ځكه دى. چه وكالت د اسقاطاتو څخه دې ځكه چې د توكيل نه وړاندې د موكل په مال كې د وكيل تصرف د مالك د حق په وجه موقوف وو. نو موكل په ذريعه د توكيل دا حق ساقط كړې دې. بهرحال هركله چې وكالت نه باطليږى. نو د وكيل تصرف به نافذ كيږى.

وَيَرْجِعُ عَلَى الْمُكْرِهِ اسْتِحْسَانًا او مكره به د اكراه كونكى نه واپس اخلى. استحساناً، لِأَنَّ مَقْصُودَ الْمُكْرِهِ زَوَالُ مِلْكِهِ ځكه چې د اكراه كونكى مقصد د مكره ملك زائل كول دى. إِذَا بَاشَرَ الْوَكِيلُ، كله چې وكيل مباشر ( عامل ) وى.

تشريح: اوس به مكره ( د طلاق په صورت كې ) نصف مهر او د ( اعتاق په صورت كې ) د غلام قيمت د اكراه كونكى نه واپس اخلى. خو استحساناً د قياس په رو سره واپس نشى اخستلې. ځكه چې اكراه خو په توكيل باندې واقع شوې ده. او په توكيل سره ملك نه زائل كيږى. ځكه چې وكيل كله كوى. او كله نه كوى. نو د هلاكاوه نسبت هغه اړخ ته نشى كيدې. وجه د استحسان داده. چه توكيل سره د اكراه كونكى مقصد هم دا دې. چه د مكره ملكيت د هغه د وكيل په فعل سره زائل شى. او دا مقصد حاصل شو. ﴿و كان ما فعله وسيلة إلى الإزالة فيضمن﴾

### اكراه په كومو امورو كښې اثر نه كوى؟

وَالنَّذْرُ لَا يَعْمَلُ فِيهِ الْإِكْرَاهُ او په نذر كې اكراه اثر نه كوى. لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الْفَسْخَ، ځكه چې هغه قابل د فسخ نه دې. وَلَا رُجُوعَ عَلَى الْمُكْرِهِ بِمَا لَزِمَهُ او په مكره چې څه لازم شى. هغې كې به اكراه كونكى باندې رجوع نه كيږى. لِأَنَّهُ لَا مُطَالِبَ لَهُ فِي الدُّنْيَا ځكه چې دنيا كې ددې هيڅ څوك مطالبه كونكې نشته. فَلَا يُطَالَبُ بِهِ فِيهَا نو په دنيا كې به اكراه كونكى نه ددې مطالبه نه كيږى.

تشريح: ددې ځائې نه د هغه څيزونو بيان دې. چه هغې كې اكراه نه موثر كيږى. فرمائى. نذر داسې شئ دې. چه دې كې اكراه اثر نه كوى. تردې كه څوك يوكس د اندام ضائع كاوه دهمكى وركړى. او په دې ئې مجبوره كړى. چه هغه خپل ځان باندې صدقه، يا روژه، يا پيدل حج واجب كړى. او مكره پخپل ځان باندې واجب كړو. نو دا كار به په هغه باندې لازم وى. ځكه چې نذر يمين ( قسم ) وى. ﴿لقوله عليه السلام: النذر يمين﴾ او يمين قابل د فسخ نه وى. نو په نذر كې به هم د فسخ احتمال نه وى. بيا كوم څه چې په مكره باندې لازم شى. هغه د اكراه كونكى نه واپس نشى اخستلې. ځكه چې دنيا كې ددې هيڅ څوك مطالبه كونكې نشته. نو په دنيا كې به ددې مطالبه د اكراه كونكى نه نه كيږى.

وَكَذَا الْيَمِينُ، وَالظِّهَارُ لَا يَعْمَلُ فِيهِمَا الْإِكْرَاهُ لِعَدَمِ احْتِمَالِهِمَا الْفَسْخَ، دغه ډول په قسم او ظهار كې هم اكراه فائده نه وركوى. ددې د فسخ قابل نه كيدلو په وجه. وَكَذَا الرَّجْعَةُ وَالْإِيلَاءُ دغه ډول رجعت او ايلاء ده. وَالْفَيْءُ فِيهِ بِاللِّسَانِ

او په ايلاء کي په ژبه سره رجوع شته. لِأَنَّهَا تَصِحُّ مَعَ الْهَزْلِ، ځکه چي دا د هزل (ټوقو) په طور صحيح کيږي.

**تشريح:** هم دا حال د قسم او د ظهار دي چه دي کي هم اکراه عمل نه کوي. تردي که يوکس په قسم خوړلو، يا ښځي سره په ظهار کاوه باندي مجبور کړي شو او هغه قسم اوخوړلو يا ئې ظهار اوکړو نو قسم به منعقد وي او ظهار به صحيح وي. ځکه چي دا دواړه هم د فسخ قابل نه دي. هم دا حکم (د طلاق نه) د رجعت، او د ايلاء دي او په ايلاء کي د ښځي د اړخه د ژبي د رجوع کاوه دي. چه په دي کي اکراه هيڅ اثر نه کوي. ځکه چي دا شيان د هزل په طور هم صحيح کيږي او کوم شئ چي د هزل په طور صحيح وي. هغه د فسخ احتمال نه لري.

وَالْخُلْعُ مِنْ جَانِبِهِ طَلَاقٌ أَوْ يَمِينٌ اود ميړه د اړخه خلع ورکول طلاق يا قسم دي. لَا يَعْمَلُ فِيهِ الْإِكْرَاهُ، چي په دي کي هم اکراه عمل نه کوي. فَلَوْ كَانَ هُوَ مُكْرَهًا عَلَى الْخُلْعِ دُونَهَا نو که ميړه په خلع ور کاوه باندي مکره وي ښځه نه وي. لَزِمَهَا الْبَدَلُ لِرِضَاهَا بِالِالْتِزَامِ قَالَ نو په ښځه به بدل خلع ورکول لازم وي. پخپل خان باندي لازمولو سره دده د رضامندئ په وجه.

**تشريح:** که يوکس مجبور کړي شو.چه خپلي ښځي ته خلع ورکړي. هغه ورکړله. نو خلع به صحيح وي. ځکه چي د ميړه د اړخه خلع ورکول طلاق وي. او اکراه د طلاق بلا عوض واقع کيدلو نه مانع نه وي. نو د طلاق بالعوض واقع کيدلو څخه به هم مانع نه وي. يا د ميړه د اړخه خلع ورکول قسم وي. او وړاندي معلومه شوه. چه يمين کي اکراه اثر نه کوي. بيا کله چي په خلع ور کاوه باندي ميړه مجبور کړي شو. ښځه مجبوره نکړي شوه. نو د خلع معاوضه به د ښځي په ذمه لازمه وي. ځکه چي هغي پخپلي رضامندئ سره پخپل خان لازم کړي دي. او مکره لپاره به په اکراه کونکي هيڅ لازم نه وي. ځکه چي اکراه کونکي دده داسي شئ هلاک کړي دي. چه هغه مال نه دي. (يعني نکاح) نو په ده ضمان نه وي.

(وَإِنْ أَكْرَهَهُ عَلَى الزِّنَا) که يوکس په زنا باندي مجبور کړي شو. وَجَبَ عَلَيْهِ الْحَدُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، نو په مکره به حد واجب وي. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. إِلَّا أَنْ يُكْرِهَهُ السُّلْطَانُ، خو که ده لره بادشاه مجبور کړو. (نو حد به نه وي). وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ صاحبين رحمهما الله فرماني. لَا يَلْزَمُهُ الْحَدُّ چي په ده به حد لازم نه وي. وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْحُدُودِ. او دا موږ په کتاب الحدود کي ذکر کړي دي.

**تشريح:** که يوکس په زنا کاوه باندي مجبور کړي شو. او هغه زنا اوکړله. نو د امام ابوحنيفه او امام زفر رحمهما الله په نيز به په ده باندي حد د زنا واجب وي. ځکه چي سړي اړخ ته د زنا تصور د آلې منتشر کيدلو نه بغير نه کيږي. او د آلې انتشار د لذت نه بغير نه کيږي. او لذت کيدل د خوشحالئ په طور د کاوه دليل دي. البته که په دي فعل باندي مجبور کونکي بادشاه وي. نو حد به واجب نه وي. ځکه چي د حد وجوب د زجر لپاره وي. او اکراه سره ددي اړتيا نشته. نو په دي فعل سره دده مقصد خپل هلاکت لري کول دي. شهوت پوره کول نه دي. نو دا اسقاط به په حد کي شبه جوړيږي. پاتي شو د آلې انتشار، نو هغه کله کله طبعي طور باندي هم کيږي. لکه د اوده سړي د آلې انتشار د ارادي او اختيار نه بغير کيږي. بيا د بادشاه استثناء د امام ابوحنيفه رحمه الله په مرجوع اليه قول کي دي. د مخکني قول مطابق اکراه کونکي که بادشاه وي. او که دده نه علاوه بل څوک وي. په دواړو صورتونو کي حد واجب دي. د صاحبينو رحمهما الله په نيز دواړو صورتونو کي حد واجب نه دي.

### مکره په مرتد کيدلو باندي د مجبوره کولو حکم

قَالَ (وَإِذَا أُكْرِهَ عَلَى الرِّدَّةِ) که مجبور کړي شو په مرتد کيدلو باندي. لَمْ تَبِنْ امْرَأَتُهُ مِنْهُ) نو دده ښځه به بائنه نه وي. لِأَنَّ الرِّدَّةَ تَتَعَلَّقُ بِالِاعْتِقَادِ، ځکه چي د ردت تعلق اعتقاد سره دي. أَلَا تَرَى آيا نه ګوري. أَنَّهُ لَوْ كَانَ قَلْبُهُ مُطْمَئِنًّا بِالْإِيمَانِ که دده زړه په ايمان مطمئن وي. لَا يَكْفُرُ نو نه کافر کيږي. وَفِي اعْتِقَادِهِ الْكُفْرَ شَكٌّ او دلته د کفره اعتقاد کي شک دي. فَلَا تَثْبُتُ الْبَيْنُونَةُ بِالشَّكِّ، نو د شک په وجه بائنه کيدل به نه ثابتيږي. فَإِنْ قَالَتِ الْمَرْأَةُ که ښځي



اوونيل. قَدْ بِنْتُ مِنْكَ چي زه ستا نه بائنه شوم. وَقَالَ ميړه اوونيل. هُوَ قَدْ أَظْهَرْتُ ذَلِكَ چي ما صرف ددي اظهار کړي دي. وَقَلْبِي مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ او زما زړه ايمان سره مطمئن وو. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً هم به دده قول معتبر وي. لِأَنَّ اللَّفْظَ غَيْرُ مَوْضُوعٍ لِلْفُرْقَةِ ځکه چي دا لفظ د جدائي لپاره نه دي وضع کړي شوي. وَهِيَ بِتَبَدُّلِ الِاعْتِقَادِ بلکه جدائي خو په اعتقاد بدليدلو سره کيږي. وَمَعَ الْإِكْرَاهِ لَا يَدُلُّ عَلَى التَّبَدُّلِ او د اکراه په موجودګي کي دا د اعتقاد بدليدلو دليل نشي جوړيدي. فَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ، نو قول به هم د ميړه مقبول وي.

**تشريح:** بيا که په زوجينو کي اختلاف وي ښځه اووائي چه ستا په زړه کي هم داسي اعتقاد وو لکه څنګه چي تا په ژبي سره وئيلي دي. چه د هغي په نتيجه کي ته په حقيقت کي مرتد شوي او زه ستا نه بائنه شوم. ميړه ځواب ورکړو چه ما خو صرف د قتل د يري په وجه په ژبه سره د کفر اظهار کړي وو او زما زړه ايمان سره مطمئن وو نو (د قياس په رو سره اګرچه د ښځي قول معتبر کيدل پکار دي ځکه چي د طلاق پشان د کفر کلمه هم د بينونت د حصول سبب دي. نو په دي کي طائع (رضامند) او مکره دواړه برابر دي خو استحساناً به د ميړه قول معتبر وي. ځکه چي کلمه د کفر د فرقت او جدائي لپاره نه ده وضع شوي بلکه په ښځه او ميړه کي جدائي د اعتقاد بدليدلو سره کيږي او په اکراه او زبردستئ سره دا دليل نشي کيدي چه دده اعتقاد بدل شو. نو د ميړه قول به مقبول وي.

**تشريح:** که يوکس په مرتد کيدلو باندي مجبور کړي شو. نو دده ښځه به دده نه بائنه نه وي ځکه چي د مرتد کيدلو تعلق اعتقاد سره دي. او ارتداد د اعتقاد په بدليدلو سره کيږي. نو که دده زړه په ايمان مطمئن وي نو نه کافر کيږي. وجه داده. چه دده ايمان په يقين سره ثابت دي. او د ردة اعتماد صرف په اعتقاد دي. او دلته د اکراه په وجه دده د کفر په اعتقاد کي شک دي. نو د شک په موجودګئ کي به دده ښځه بائنه نه وي ځکه چي ښځه هغه وخت بائنه کيږي. کله چي په اعتقاد کي هيڅ قسمه څه شک موجود نه وي.

بِخِلَافِ الْإِكْرَاهِ عَلَى الْإِسْلَامِ به خلاف په اسلام باندي د اکراه کولو. حَيْثُ يَصِيرُ بِهِ مُسْلِمًا، چي په دي سره به مسلمان ګرځيږي. لِأَنَّهُ لَمَّا احْتَمَلَ نو هر کله چي دغه احتمال دي. وَاحْتَمَلَ او دا احتمال هم دي. رَجَّحْنَا الْإِسْلَامَ فِي الْحَالَيْنِ نو موږ په دواړو حالتونو کي اسلام ته ترجيح ورکړله. لِأَنَّهُ يَعْلُو وَلَا يُعْلَى، ځکه چي اسلام پورته وي ښکته نه وي. وَهَذَا بَيَانُ الْحُكْمِ، او دا د حکم بيان دي. أَمَّا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللَّهِ تَعَالَى باتي شو د الله په نيز، إِذَا لَمْ يَعْتَقِدْهُ نو که هغه د اسلام اعتقاد اونکړو. فَلَيْسَ بِمُسْلِمٍ، نو هغه مسلمان نه دي.

**تشريح:** دا د سوال مقدر ځواب دي. تقدير د سوال دادي. چه تاسو دا څنګه اووئيل. چه اکراه سره اعتقاد د بدليدلو دليل نه دي. حالانکه که يو کافر په مسلمانيدلو باندي مجبور کړي شو او هغه د کلمهٔ طيبه الفاظ اووئيل. نو هغه به په دي سره مسلمانيږي. نو په دي صورت کي د اکراه په موجودګئ کي د کفر نه اسلام اړخ ته د اعتقاد بدليدل به معتبر وي؟

**جواب:** حاصل د ځواب دادي. چه دلته دواړه احتماله دي. دا احتمال هم شته چه هغه زړه سره مسلمان شوي وي. او دا احتمال هم شته. چه په زړه سره مسلمان شوي نه وي. نو موږ اکراه په ردت او اکراه په اسلام دواړو حالتونو کي اسلام ته ترجيح ورکړله. ځکه چي اسلام هميشه پورته (او اوچت) وي. لاندي کيږي نه او ددي تحقيق دا دي. چه دلته کي اکراه سره د اسلام حقيقت اوموندي شو. ځکه چي د اسلام تحقق د زړه تصديق او د ژبي اقرار سره کيږي. او موږ دده د ژبي اقرار پخپلو غوږونو آوړو. او ژبه د زړه ترجمانه وي نو دده د اسلام حکم به ورکولي شي. په آيت ﴿وَلَهُ أَسْلَمَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا﴾ سره ددي تائيد کيږي.

وَلَوْ أُكْرِهَ عَلَى الْإِسْلَامِ که په اسلام باندي مجبور کړي شو حَتَّى حُكِمَ بِإِسْلَامِهِ تردي چي دده د اسلام حکم ورکړي شو. ثُمَّ رَجَعَ او هغه د اسلام نه واپس اوګرځيدلو. لَمْ يُقْتَلْ لِتَمَكُّنِ الشُّبْهَةِ وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْقَتْلِ نو قتلولي به نشي. د شبهٔ موجود کيدلو په وجه. چه دا قتل لري کوي.

تشریح: یوسړي په اسلام باندې مجبور کړې شو. هغه د اسلام په کلمه باندې تلفظ اوکړو. او د هغه د مسلمانیدلو حکم ورکړې شو. ددې نه روسته هغه د اسلام نه واپس اوګرځیدلو. نو د قیاس تقاضه دا ده. چه دده قتلول پکار دی. ځکه چې ده خپل دین بدل کړو. «وقد قال النبی ﷺ من بدل دینه فاقتلوه» خو استحساناً به دې نشي قتلولې. ځکه چې دلته کې د ده مرتد کیدلو شبه موجود ده. ددې مطلب دا دې. چه ممکن ده. چه د شهادتین په (تصدیق قلبی او د اقرار باللسان) په وخت دده په زړه کې تصدیق موجود نه وی. او شبه په داسې شئ کې ده. چه دې سره قتل لرې کولې شی.

## د مکره علی الکفر د تیرشوی امر خبر ورکولو دعوې سره د ښځې حکم

> وَلَوْقَالَ الَّذِيْ أُكْرِهَ عَلٰى إِجْرَاءِ كَلِمَةِ الْكُفْرِ که اوونیل. هغه کس چې مجبور کړې شوې دې د کفر کلمې په اجراء (او تلفظ) کاوه باندې، أَخْبَرْتُ عَنْ أَمْرٍ مَاضٍ چې ما خو د تیر شوی امر خبر ورکړې وو. وَلَمْ أَكُنْ فَعَلْتُ حالانکه ما داسې نه وو کړی. بَانَتْ مِنْهُ حُكْمًا لَا دِيَانَةً. نو دده ښځه به حکماً بائنه وی. دیانتاً به بائنه نه وی. لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّهُ طَائِعٌ بِإِتْيَانِ مَا لَمْ يُكْرَهْ عَلَيْهِ، ځکه ده اقرار کړې دې. چه دې د هغه لفظ په وئیلو کې په زړه سره خوشحاله وو. په کوم باندې چې اکراه نه ده شوې. وَحُكْمُ هٰذَا الطَّائِعِ مَا ذَكَرْنَاهُ. او هم دغه ډول د طائع هم هغه حکم دې. کوم چې موږ ذکرکړل.

تشریح: دا په تیر شوی قول «و قال هو قد اظهرت ذالک» باندې معطوف دې. مطلب دا دې. چه په کوم سړی باندې د کفر کلمې وئیلو لپاره اکراه شوې وه. هغه د ښځې په خواب کې اوونیل. چه ما د اکراه کونکی په وینا باندې د کفر کومه کلمه د ژبې نه اوښکلې وه. د هغې نه زما مراد دا وو. چه د تیرې شوې زمانې د دروغو خبر ورکړم. یعنی دا چې ما په یوه زمانه کې کفر کړې وو. حالانکه دا د دروغو خبر وو. ځکه چې ما کله هم کفر نه دې کړې. نو په دې صورت کې به دده ښځه قضاء بائنه وی. دیانتاً به نه وی. او د قضاء بائنه کیدلو وجه دا ده. چه ده د داسې امر اقرار اوکړو. چه ما د زړه په خوشحالئ داسې لفظ اووئیلو. چه هغې باندې اکراه نه وه شوې. ځکه چې اکراه په کفر ښکاره کاوه وو. او اخبار د ښکاره کاوه خلاف دې.

> وَلَوْقَالَ او که ده اوونیل. أَرَدْتُ مَا طُلِبَ مِنِّيْ چې ما هغه اراده کړې ده. د کوم چې مطالبه شوې وه. وَقَدْ خَطَرَ بِبَالِي الْخَبَرُ عَمَّا مَضٰى حالانکه زما په زړه کې د تیرشوی امر خبر راغی: بَانَتْ دِيَانَةً وَقَضَاءً، نو دده ښځه به بائنه وی. دیانتاً هم او قضاءً هم. لِأَنَّهُ أَقَرَّ أَنَّهُ مُبْتَدِءٌ بِالْكُفْرِ هَازِلٌ بِهِ ځکه ده اقرار کړې دې. چه ده د هزل (توقو) په طور ابتداء کې کفر کړې دې. حَيْثُ عَلِمَ لِنَفْسِهِ مَخْلَصًا غَيْرَهُ ځکه چې ده د ځان لپاره ددې نه علاوه بل خوک مخلص اوګنړلو.

تشریح: او که ذکر شوی سړی اوونیل. چه اکراه کونکی د څه مطالبه کړې وه. ما هم د هغې اراده اوکړله. حالانکه زما په زړه کې د تیرشوی امر خبر راغلې وو. نو په دې صورت کې به دده ښځه بائنه کیږی. قضاء هم او دیانتاً هم. ځکه چې هرکله دده په زړه کې د تیرشوی امر د دروغو خبر ور کاوه خبره راغله. نو که هغه ددې نیت کړې وې. نو د کفر ځخه به بچ شوې وو. ددې باوجود ده هغه اراده اوکړله. کوم چې د اکراه کونکی مطلب وو. نو ده د هزل (توقو) په طور ابتدا کې کفر کړې دې. نو دا په خوشحالئ د کفر کلمه جاری کاوه په مرتبه کې شو. نو ښځه به په هر اعتبار سره بائنه وی.

فائده: د مذکوره مسئلې حاصل دا دې. چه کوم سړې دکلمهٔ کفر جاری کاوه باندې مجبور کړې شو. د هغې درې صورتونه دی. چه په دې کې په یو صورت کې نه کافر کیږی. نه قضاءً او نه دیانتاً، او هغه صورت دا دې. چه ده د کلمهٔ کفر تکلم اوکړو. او په کوم چې دې مجبور کړې شوې دې. د هغې نه د علاوه دده په زړه کې خیال نه دې راغلې. بلکه دده زړه په ایمان باندې مطمئن پاتې شوې دې. او په دوهم صورت کې صرف قضاء کافر کیږی. دیانتاً نه کافر کیږی. او هغه صورت دا دې. چه د امرماضی د دروغو خبر ورکول مراد وی. د



مستقبل د کفر اراده نه وی. او په دریم صورت کې قضاءً او دیانتاً هر لحاظ سره کافر کیږی. او هغه صورت دا دې. چه په زړه کې د امرماضی د دروغو خبر راشی. او بیا هم هغه اختیار نکړی بلکه د اکراه کونکی د وینا مطابق د مستقبل د کفر اراده اوکړی.

> وَعَلٰى هٰذَا إِذَا أُكْرِهَ عَلَى الصَّلَاةِ لِلصَّلِيْبِ او هم دغه ډول که د صلیب لپاره په لمونځ کولو، وَسَبِّ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ یا نبی ﷺ ته په بد رد (کنځلو) وئیلو باندې مجبور کړې شو. فَفَعَلَ او هغه داسې اوکړل. وَقَالَ او دا ئې اوونیل. نَوَيْتُ بِهِ الصَّلَاةَ لِلّٰهِ تَعَالٰى چې ما د الله لپاره لمونځ اوکړو. وَمُحَمَّدًا آخَرَ غَيْرَ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی ﷺ نه علاوه د بل محمد نیت ئې کړې وو. بَانَتْ مِنْهُ قَضَاءً لَا دِيَانَةً نو دده ښځه به قضاءً بائنه وی. دیانتاً به بائنه نه وی. وَلَوْ صَلّٰى لِلصَّلِيْبِ او که د صلیب لپاره ئې لمونځ اوکړو. وَسَبَّ مُحَمَّدًا النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبی ﷺ ته ئې بد رد اوونیل. وَقَدْ خَطَرَ بِبَالِهِ الصَّلَاةُ لِلّٰهِ تَعَالٰى وَسَبُّ غَيْرِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ حالانکه دده په زړه کې الله لپاره د لمونځ او غیر نبی ﷺ ته ئې د بد رد وئیلو خیال راغی: بَانَتْ مِنْهُ دِيَانَةً وَقَضَاءً لِمَا مَرَّ، نو دده ښځه به بائنه وی. دیانتاً هم او قضاءً هم. د ذکر شوی دلیل په وجه، وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ زِيَادَةً عَلٰى هٰذَا فِيْ كِفَايَةِ الْمُنْتَهٰى، وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او موږ ددې نه زیات وضاحت کړې دې. ددې په کفایة المنتهی کې، والله اعلم.

تشریح: که یوکس صلیب لپاره په سجده کولو، یا د نبی کریم ﷺ په شان اقدس کې په بد رد وئیلو باندې مجبور کړې شو. او هغه داسې اوکړل. نو د تیرې شوې مسئلې پشان ددې هم درې صورتونه دی. ① مکره وائی. چه ما په لمانځه کې الله لپاره د سجدې نیت کړې وو. یا ما په بدګوئ (او کنځلو) کې د یو محمد نومې نصرانی نیت کړې وو. په دې صورت کې دې قضاء کافر کیږی. ځکه چې هرکله ده داسې وئیلې دی. «لوېت به الصلاة لله» نو ده د هغه خبرې اقرار اوکړو. چه کوم څه دده نه صادر شوی دی. هغې کې دې مکره نه وو. خو دیانتاً نه کافر کیږی. ځکه چې ده سجده د الله تعالی لپاره کړې ده. صلیب لپاره ئې نه ده کړې. او ده د نبی کریم ﷺ پشان کې بدکلامی نه ده کړې. ② مکره وائی. چه زما په زړه کې الله لپاره د لمونځ کولو، یا د محمد نومې نصرانی خیال راغی: خو ما د اکراه کونکی د وینا مطابق صلیب ته سجده اوکړله. یا ما د نبی کریم ﷺ پشان کې بدکلامی اوکړله. خو زه په دې باندې راضی نه ووم. نو په دې صورت کې هم کافر کیږی. ځکه چې ده د کفر نه د خلاصیدلو موقع اوموندله. بیا ئې هم د اکراه کونکی د ارادې موافق اوکړل. او په دې کې د خندا خبره داده. چه زه په دې باندې راضی نه ووم. نو دا قضاءً او دیانتاً هر لحاظ سره کفر دې. ③ مکره وائی. چه زما په زړه کې هیڅ خیال رانغلو. او ما د مجبورئ نه صلیب ته سجده اوکړله. یا مې د نبی کریم ﷺ پشان کې بدکلامی اوکړله. نو په دې صورت کې نه کافر کیږی. نه قضاءً او نه دیانتاً. ځکه چې ده د اکراه د مجبورئ نه داسې کړې دی. حالانکه دده زړه مطمئن دې.

# (كِتَابُ الْحَجْرِ)

ژباړه: (دا) کتاب د حجر (یعنی د منع کاوه په بیان کې) دې.

تشریح: د کتابت الاکراه نه روسته کتاب الحجر بیانوی. ځکه چې دواړو کې سلب د اختیار وی. خو اکراه د حجر نه زیات قوی (او مضبوط) دې. ځکه چې اکراه کې سلب د اختیار دهغه چا نه کیږی. د چا لپاره چې اختیار صحیح او کامل ولایت وی. نو اکراه مستحق د تقدیم دې.

**د حجر لغوی او اصطلاحی تعریف:** حجر (بالتثلیث) په لغت کې مطلق بندولو او منع کاوه ته وائی. هم ددې نه حجر (په کسرې سره) عقل ته وائی. ځکه چې عقل انسان د قبیحه (او ناکاره) کارونو کاوه نه منع کوی. قال الله تعالی ﴿هَلْ فِيْ ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِيْ حِجْرٍ﴾ ،،دی لذی عقل،، هم ددې نه حطیم ته حجر وائی. «لانه منع من الکعبة»

پاتې شو د حجر اصطلاحی تعریف، نو ① په نهایه او عنایه کې دی. «هو المنع عن التصرف فی حق شخص

مخصوص وهو الصغر والرقيق والمجنون﴾ چې د حجر معنی مخصوص کس یعنی صغیر، غلام، او مجنون د تصرف نه منع کول دی. خو په دې تعریف کې په دوې (دوه) وجو سره نقصان دې.[1] اول څکه چې شریعت کې مطلقاً د تصرف نه منع کاوه نه حجر نه وائی. بلکه صرف د قولی تصرف نه منع کاوه ته وائی.[2] دوهم څکه چې محجور علیه صرف په ذکرشوی دریو کسانو کې منحصر نه دې. بلکه حیله باز مفتی، مطبب جاهل، او مکاری مفلس هم د صاحبینو رحمهما الله په نیز محجورعلیه دی. نو په مذکوره تعریف کې د مقید اطلاق او د مطلق تقلید دې ⑦ دوهم تعریف د صاحب د کافی دې. ﴿الحجر فی اللغة المنع و فی الشرع منع عن التصرف قولا بصغر ورق وجنون﴾ په دې کې اول محذور (محجون) خو راغلې دې خو محذور ثانی پخپل حال پاتې پاتې دې. نو ③ غوره تعریف هغه دې. کوم چې معراج الدرایه کې مذکور دې. ﴿ثم الحجر لغة المنع مصدر حجر علیه و شرعاً منع مخصوص و هو المنع من التصرف قولاً شخص معروف مخصوص و هو المستحق للحجر بأی سبب کان﴾.

ⓘ اوس: حجر اصطلاحی مطلب دا شو چه مخصوص کس د مخصوص تصرف یعنی د قولی تصرف نه منع کړې شی. قولی تصرفات کوم چې ژبې سره متعلق وی. لکه بیع او شراء او هبه وغیره، فعلی تصرفات کوم چې د جوارح افعال دی. لکه قتل، د مال هلاکول وغیره. نو په حجر کې صرف قولی تصرف نه نافذ کیږی. که ماشوم د چا مال ضائع کړی. نو ضمان به واجب وی.

## موجب حجر اسباب ثلاثه

قَالَ ﴿الْأَسْبَابُ الْمُوجِبَةُ لِلْحَجْرِ ثَلَاثَةٌ: الصِّغَرُ، وَالرِّقُّ، وَالْجُنُونُ﴾ موجب حجر اسباب درې دی. د ماشوم توب عمر، غلام کیدل، لیونې کیدل، ﴿فَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُ الصَّغِيرِ إِلَّا بِإِذْنِ وَلِيِّهِ﴾ نو جائز نه دې. د بچی تصرف، خو دهغه د ولی په اجازت سره، ﴿وَلَا تَصَرُّفُ الْعَبْدِ إِلَّا بِإِذْنِ سَيِّدِهِ﴾ او نه د غلام تصرف، خود هغه د آقا په اجازت سره،

**تشریح:** اسباب د حجر درې دی. اول د وړوکی عمر بچې، دوهم رقیت او مملوکیت یعنی وینځه یا غلام کیدل، دریم جنون او لیونتوب. بچې ناقص العقل وی. او د لیونی عقل نه وی. او دې خپله نفع نقصان نه پیژنی په دې وجه شریعت کې ددوی د قولی تصرفاتو اعتبار نشته. البته د بچی ولی یعنی دده پلار یا وصی که دده د تصرف اجازت ورکړی. نو جائز به وی. څکه چې د ولی اجازت ورکول، ددې خبرې دلیل دې. چه په ده کې د تصرف اهلیت او لیاقت موجود دې. او مملوك (غلام) اگرچه عاقل وی. خو دده سره چې کوم څه وی. هغه دده د آقا وی. نو د آقا د حق د رعایت په لحاظ دده تصرف هم غیر معتبر دې. چه دده د غلام منافع بې کاره نشی. او دده سټ په قرضه کې راگیر نشی. او د بل کس ملك نشی. خو که آقا ددې اجازت ورکړو. نو هغه د خپل حق په فوت کیدلو باندې پخپله راضی شو. او د لیونی خبره دا ده. چه لیونتوب او د تصرف لیاقت دواړه نه یو ځائې کیږی. په دې وجه به د لیونی هیڅ حال کې هم جائز نه وی. پاتې شو غلام، نو هغه پخپله لیاقت لری. او د بچی د لیاقت انتظار کولې شی. نو توپیر ښکاره دې.

**سوال**⊛ صاحب د کتاب د حجر صرف درې سببونه ذکر کړی دی. د هغې مطلب دا شو. چه د بچی، غلام، او د لیونی نه علاوه بل هیڅ څوك محجور نشته. حالانکه داسې نه ده. څکه چې مفتی ماجن کوم چې خلگو ته باطل حیلې ښائی. او جاهل طبیب کوم چې خلگو ته ضررناك او مهلك دوایانې ورکوی. او ځاروی په کرایه باندې ورکونکې چې هغه غریب وی. دا هم د محجور کیدلو سبب دې. بلکه د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مدیون او هغه سفیه چې د هغه بلوغ د هوښیارتوب په حالت کې شوې وی. هغه هم محجور دې؟

**جواب**⊛ دلته د اسبابو حصر د حجر شرعی معنی په اعتبار سره مقصود دې. او مفتی ماجن، جاهل طبیب، او مکاری مفلس باندې شرعی معنی نه صادقیږی. نو د مذکوره حصر نه ددوی خارج کیدل هیڅ مضر نه دی.

﴿وَلَا تَصَرُّفُ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ بِحَالٍ﴾، ﴿أَمَّا الصَّغِيرُ فَلِنُقْصَانِ عَقْلِهِ﴾ او نه د مغلوب العقل لیونی تصرف په هیڅ حالت کې، وړوکې ماشوم خو د هغه د عقل د کموالی په وجه دې. ﴿غَيْرَ أَنَّ إِذْنَ الْوَلِيِّ آيَةُ أَهْلِيَّتِهِ﴾ خو د ولی اجازت



ورکول د هغه د اهلیت علامت دې. ﴿وَالرِّقُّ لِرِعَايَةِ حَقِّ الْمَوْلَى﴾ او غلامی د مولا د رعایت په وجه دې. ﴿كَيْ لَا يَتَعَطَّلَ مَنَافِعُ عَبْدِهِ﴾ چې دده د غلامی منافع بې کاره نشی. ﴿وَلَا يَمْلِكُ رَقَبَتَهُ بِتَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِهِ﴾ او دده سټ مملوك نشی په پور کې کیریدو سره، ﴿غَيْرَ أَنَّ الْمَوْلَى بِالْإِذْنِ رَضِيَ بِفَوَاتِ حَقِّهِ﴾ صرف دومره خبره ده. چه آقا اجازت ور کاوه سره د خپل حق په فوت کیدلو پخپله راضی شو. ﴿وَالْجُنُونُ لَا تُجَامِعُهُ الْأَهْلِيَّةُ﴾ او لیونتوب سره لیاقت نه جمع کیږی. ﴿فَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُهُ بِحَالٍ﴾ نو دده تصرف به په هیڅ حالت کې هم جائز نه وی. ﴿أَمَّا الْعَبْدُ﴾ پاتې شو غلام. ﴿فَأَهْلٌ فِي نَفْسِهِ﴾ نو هغه فی نفسه اهل دې. ﴿وَالصَّبِيُّ تُرْتَقَبُ أَهْلِيَّتُهُ﴾ او د بچی د لیاقت انتظار کیږی. ﴿فَلِهَذَا وَقَعَ الْفَرْقُ﴾ په دې وجه توپیر واقع شو.

**تشریح:** مجنون مغلوب یعنی هغه دیوانه چې هغه په هیڅ وخت کې هم په هوش کې نه راځی. د هغه تصرف په هیڅ حالت کې هم صحیح نه دې. تردې که ولی د هغه تصرف جائز اوگرځوی بیا هم صحیح نه دې. څکه چې هغه د جنون په وجه د تصرفاتو اهل نه دې. او که هغه کله لیونې کیږی. او کله هوښیاریږی. نو د هغه حکم د ممیز ماشوم (هوښیار ماشوم) پشان دې.

ⓘ **تنبیه**⊛ په نهایه او غایة البیان کې دی. چه کوم کس کله هوښیار او کله لیونې کیږی. نو دې د هغه بچی پشان دې. چه هغه په ښه او بدو کې توپیر کولې شی او په زیلعی کې دی چه هغه د عاقل پشان دې. شبلی مغشی زیلعی په دواړو قوتونو کې تطبیق کړې دې. فرمائی. که د هوښیارتوب وخت مقرر وی. او هغه د افاقه په حالت کې څه عقد اوکړی. نو په ده کې د عاقل پشان د عقد د نفاذ حکم دې. او که د هغه د هوښیارتوب هیڅ معین وخت نه وی. نو په ده کې د صغیر ماشوم پشان د توقف حکم دې. نو د زیلعی کلام په شق اول باندې محمول دې. او د نهایه او غایة البیان کلام په شق ثانی باندې محمول دې. ﴿کذا فی الطحاوی﴾.

## د محجورینو د تصرفاتو احکام

قَالَ ﴿وَمَنْ بَاعَ مِنْ هَؤُلَاءِ شَيْئًا﴾ او چا چې خرڅ کړو. ددې خلگو څخه څه څیز، ﴿وَهُوَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ﴾ یا ئې واخستلو، په داسې حال کې، چې هغه په بیع پوهیږی. ﴿وَيَقْصِدُهُ﴾ او ددې قصد کوی. ﴿فَالْوَلِيُّ بِالْخِيَارِ﴾ نو دده ولی ته اختیار دې. ﴿إِنْ شَاءَ أَجَازَهُ﴾ که غواړی. دا دې نافذ کړی. ﴿إِذَا كَانَ فِيهِ مَصْلَحَةٌ﴾ که په دې کې څه مصلحت وی. ﴿وَإِنْ شَاءَ فَسَخَهُ﴾ او که غواړی. فسخ دې کړی. ﴿لِأَنَّ التَّوَقُّفَ فِي الْعَبْدِ لِحَقِّ الْمَوْلَى﴾ څکه چې د غلام په تصرف کې توقف د مولا د حق په وجه دې. ﴿فَيَتَخَيَّرُ فِيهِ﴾ نو آقا ته اختیار ورکړې شو. ﴿وَفِي الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ نَظَرًا لَهُمَا﴾ او د بچی او لیونی په تصرف کې توقف د هغوی د فائدې لپاره دې. ﴿فَيَتَحَرَّى مَصْلَحَتَهُمَا فِيهِ﴾ نو په دې کې به ددوی فائدې ته کتلې شی. ﴿وَلَا بُدَّ أَنْ يَعْقِلَا الْبَيْعَ لِيُوجَدَ رُكْنُ الْعَقْدِ﴾ او دا ضروری ده. چه هغوی په بیع پوهیږی. چه د عقد رکن اوموندې شی. ﴿فَيَنْعَقِدُ مَوْقُوفًا عَلَى الْإِجَازَةِ﴾ نو دا به په اجازت باندې موقوف منعقد کیږی. ﴿وَالْمَجْنُونُ قَدْ يَعْقِلُ الْبَيْعَ﴾ او لیونې کله په بیع پوهیږی. ﴿وَيَقْصِدُهُ﴾ او ددې قصد کوی. ﴿وَإِنْ كَانَ لَا يُرَجِّحُ الْمَصْلَحَةَ عَلَى الْمَفْسَدَةِ﴾ او اگرچه فائدې ته په خرابئ باندې ترجیح نشی ورکولې. ﴿وَهُوَ الْمَعْتُوهُ الَّذِي يَصْلُحُ وَكِيلًا عَنْ غَيْرِهِ كَمَا بَيَّنَّا فِي الْوَكَالَةِ﴾. او دا هم هغه معتوه (پاگل) دې. کوم چې د غیر د اړخه وکیل کیدای شی. لکه څنگه چې مونږ په وکالت کې بیان کړی دی.

**تشریح:** د ،، هؤلاء،، نه مراد ماشوم، غلام، او مجنون دې. چه کله لیونی او کله هوښیار وی. هم دا هغه معتوه (ناقص العقل کذا فی مختار الصحاح) دې. چه د غیر د اړخه وکیل کیدای شی او دې په بیع پوهیږی. او ددې قصد کوی. اگرچه مصلحت ته په مفسد باندې ترجیح نشی ورکولې. ددې په خلاف هغه مجنون دې. چه دهغه عقل بالکل ختم شوې وی. دلته کې هغه مراد نه دې. څکه چې د هغه تصرف نه صحیح کیږی. اگرچه اجازت هم ملاؤ شی. د ﴿یعقل البیع﴾ نه مراد دا دې. چې هغه په دې پوهیږی. چه بیع سره ثمن حاصلیږی. او مبیع دخپل ملك نه اوځی. او شراء ددې په عکس ده. د ،، یقصد،، نه مراد دا دې. چه هغه د حکم د

اثبات اراده کوي.نو په دې سره هازل ( ټوقې کوونکې) اووتلو.چه دهغه مقصد د بیع د حکم اثبات نه وي.د ولي نه مراد پلار، نیکه، ددوی وصی ، آقا او قاضی دې.

ق د قول مطلب دادې.چه په مذکوره محجورینو کې چې کوم کس داسې عقد اوکړی.کوم چې د نفع او ضرر په منځ کې دائر وي.او هغه په عقد پوهیږي.او ددې قصد کوي.نو دده ولی ته اختیار دې.که غواړي.عقد دې نافذ کړي.که غواړي.فسخ دې کړي.د آئمه ثلاثه ﷭ په نیز نه ددوی بیع منعقد کیږي.او نه شراء. ﴿وهذا الخلاف إذا توكل بالبيع و الشراء غيرهم فباع و اشترى يجوز عندنا خلافاً لهم﴾ مونږ دا وایو.چه د غلام تصرف د مولا د حق په وجه موقوف وو.په دې وجه آقا ته اختیار ورکړې شو.او د صبی او مجنون په صورت کې توقف ددوی د حالت د فائدې لټولو لپاره وو.نو ولی به ددوی په حق کې بهتری ګوري.او په کومه کې چې بهتری وي.هغه به نافذ کوي.

فَإِنْ قِيلَ: که اووئیلې شي. التَّوَقُّفُ عِنْدَكُمْ فِي الْبَيْعِ. چې توقف خو زمونږ په نیز بیع کې دې. أَمَّا الشِّرَاءُ پاتې شو اخستل، فَالْأَصْلُ فِيهِ النَّفَاذُ عَلَى الْمُبَاشِرِ. نو په دې کې اصل دا دې.چه هغه په مباشر ( فاعل) باندې نافذ شي. قُلْنَا: مونږ وایو. نَعَمْ إِذَا وَجَدَ نَفَاذًا عَلَيْهِ كَمَا فِي شِرَاءِ الْفُضُولِي، آو خو کله چې دا نفاذ او موندې شي.لکه څنګه چې د فضولی په اخستلو کې کیږي. وَهَاهُنَا لَمْ نَجِدْ نَفَاذًا لِعَدَمِ الْأَهْلِيَّةِ أَوْ لِضَرَرِ الْمَوْلَى او دلته دې د اهلیت نه کیدلو، یا د آقا د ضرر په وجه نفاذ او نه موندلو. فَوَقَّفْنَاهُ په دې وجه مونږ ( د اخستلو دا تصرف) موقوف اوساتلو.

ق **سوال**۞ د سوال تقریر د ژباړه نه واضح دې.چه توقف صرف په بیع کې کیږي.پاتې شو اخستل، نو په دې کې اصل هم دا دې.چه هغه په مباشر او فاعل ( اخستونکی ) باندې د توقف نه بغیر نافذ کیږي.نو بیا دلته کې اخستل اجازت باندې موقوف څنګه منعقد کیږي ؟

**جواب**۞ حاصل د خواب دا دې.چه اخستل په مباشر باندې د توقف نه بغیر نافذ کیږي.دا ټیک ده.خو دا هغه وخت کیږي.کله چې دا نفاذ اوموندې شي.لکه څنګه چې د فضولی په اخستلو کې کیږي.که فضولی سړې د یو سړي مال د بل لپاره واخلی.( او اخستل مطلق اوساتي.غیر اړخ ته ئې مضاف نکړي ).نو هغه د توقف نه بغیر په ده باندې نافذ کیږي.او دلته د مذکورینو د اخستلو نفاذ اونه موندې شو.د بچی او مجنون کیدلو په صورت کې خو ځکه چې په دوی کې اهلیت نشته.او د غلام په صورت کې ځکه چې دده د آقا نقصان دې.ځکه چې مونږ ددوی اخستل موقوف ګرځولی دې.بیا مذکوره اشکال په قول د صاحب د نهایه د مختصر القدوری په عبارت باندې پریوځی.چه هغې کې لفظ د،، إشترى،، موجود دې.او دا لفظ په بدایه متن کې هم ثابت دې.خو د هدایه اکثر نسخې ددې لفظ نه خالی دی.نو په دې باندې مذکوره اعتراض نه واقع کیږي.

## په اقوالو او افعالو کښې د اسباب ثلاثه د حجر حکم

قَالَ (وَهَذِهِ الْمَعَانِي الثَّلَاثَةُ تُوجِبُ الْحَجْرَ فِي الْأَقْوَالِ دُونَ الْأَفْعَالِ) او دا درې واړه خبرې واجبوی حجر په اقوالو کې نه په افعالو کې ، لِأَنَّهُ لَا مَرَدَّ لَهَا لِوُجُودِهَا حِسًّا وَمُشَاهَدَةً، ځکه چې ددې نه خلاصې نشته. ددې د موجود کیدلو په وجه، حساً او مشاهدةً.

**تشریح:** مذکوره اسباب ثلاثه یعنی ماشوم توب، غلامی ، او جنون صرف په اقوالو کې حجر واجبوی.افعالو کې نه واجبوی.ځکه چې د افعالو منلو نه بغیر خلاصې نشته.ځکه چې دا محسوس او د مشاهدې په طور موجودیږي.که یوکس یو انسان قتل کړو.یا ئې د هغه لاس کټ کړو.یا ئې دچا څه شئ برباد کړو.نو قتل، کټ کول، او کوم نقصان چې ده کړې دې.هغې ته مونږ دا نشو وئیلې.چه هغه نه دی کړې.ګنی ددې نتیجه به دا وی.چه کوم کس قتل کړې شوې دې.هغه به مقتول نه وي.او د چا چې لاس کټ کړې شوې دې.هغه مقطوع الیه نه وي.او کوم شئ چې برباد کړې شوې دې.هغه هلاک شوې نه وي.حالانکه دا دخول فی سوفسطانیه او د حقائقو نه ښکاره انکار دې.



بِخِلَافِ الْأَقْوَالِ، په خلاف د اقوالو، لِأَنَّ اعْتِبَارَهَا مَوْجُودَةٌ بِالشَّرْعِ ځکه چې ددې د موجود کیدلو اعتبار په ذریعه د شرع دې.

**تشریح:** په خلاف د اقوالو، چې ددې د موجود کیدلو اعتبار د شرع په ذریعه کیږي.چه دا په انشاءاتو کې بالکل ښکاره دې.ځکه چې تطلیق، اعتاق، او بیع او هبه وغیره په محل کې حساً اثر نه کوي.بلکه دا محل شرعاً حرام ، او آزاد مملوك کیږي.پاتې شو اخبارات، لکه اقرار او شهادات وغیره، نو ددې موجب شرعاً معلوم دې.ځکه چې دا امور مخبرعنه باندې دلالت کوي.په دې کې دا خبره جائز ده.چه دا دلالت واقع نشی.ځکه چې دې کې پخپله د صدق او کذب احتمال شته.حاصل دا چې په خارج کې د تصرفات قولی وجود نه کیږي.بلکه دا صرف شرعاً معتبر وي.په دې وجه ددې د عدم اعتبار مناسب دې.په خلاف د فعلی تصرفاتو، چې ددې په خارج کې یو ډول وجود شته.لکه قتل او مال هلاکول، په دې وجه ددې د عدم اعتبار مناسب نه دې.

وَالْقَصْدُ مِنْ شَرْطِهِ او د اعتبار شرط قصد کیدل دی.

**تشریح:** یعنی اقوال موجود اعتبار کول د شرع په ذریعه کیږي.او ددې اعتبار شرط دا دې. چې قصد وي.ځکه چې معتبر کلام هغه وي.چه دا د صورت او معنی دواړو په لحاظ سره موجود وي.حالانکه د معنی په اعتبار سره د کلام وجود د قصد او ارادې نه بغیر نه کیږي.او قصد او اراده د عقل په ذریعه کیږي.او بچی او لیونی سره عقل نه وي. ﴿فلا يكون لهما قصد﴾ پاتې شو غلام، نو د هغه د اړخه اګرچه قصد او اراده شته.البته هغه د اختیار نه بغیر آقا باندې د لزوم په وجه معتبر نه دې.په خلاف د فعل، چې ددې اعتبار په قصد باندې موقوف نه دې.تردې که څوك اوده شوې سړې د یو کس په مال باندې راواوړي.او هلاك ئې کړي.یا د یوې ورځې بچې د یو سړي د شیشې په لوخي باندې راپریوځی.یا غلام یا مجنون د یو کس مال هلاك کړي.نو فی الحال به تاوان واجب وي.اګرچه دلته کې قصد او اراده نشته.

ق د علامه مرغینانی ﷫ په قول ﴿والقصد من شرطه...﴾ باندې دا اشکال کیږي.چه طلاق، عتاق، عفو عن القصاص، یمین، او نذر واړه داسې اقوال دی.چه دا په شرع کې معتبر دی.حالانکه ددې په شرع کې د معتبر کیدلو لپاره قصد او اراده شرط نه ده.نو که عاقل بالغ سړې که خندا او ټوقو ( مذاق) کې طلاق ورکړي.یا ( غلام) آزاد کړي.یا قسم اوخوري.یا نذر اوکړي.نو دا واړه کارونه صحیح او په شرع کې معتبر وي.لکه څنګه چې د هزل ( ټوقو) په مسئلو کې ددې صراحت موجود دې.حالانکه هزل ( ټوقه) د قصد منافی دې.ځکه چې د هزل په نفس مفهوم کې د قصد او ارادې عدم معتبر دې.

ق **سوال**۞ په شرح عنایه کې دی.که دا اووئیلې شي.چه اقوال هم حساً او مشاهدتاً موجود وي.بیا څه وجه ده.چه ددې د موجود کیدو اعتبار کاوه کې قصد شرط دې.او په افعالو کې ددې شرط نشته؟

**جواب**۞ نو ددې خواب په دوې (دوه) قسمه دې.① اول دا چې اقوال کوم چې حساً او مشاهدتاً موجود کیږي.هغه د خپلو معلولاتو عین نه وي.بلکه په دې باندې دلالت وي.او د دلیل نه د مدلول تخلف جائز دې.په دې وجه موجود قول معدوم ګرځول ممکن دی.په خلاف د افعالو،چه هغه عین مدلولات وي.نو ددې د موجود کیدو نه روسته معدوم ګرځول نا ممکن دی.② دویمه وجه دا ده.چه قول کله صادق وي.او کله کاذب وي.کله بغیر د ټوقو وي.او کله په ټوقه کې وي.آیا نه ګورې.چه کله آزاد، عاقل، بالغ سړي نه قول په طریقه د هزل ( او ټوقې ) موجود شي.نو هغه شرعاً معتبر نه وي. ﴿لكنا من هذه الثلاثة﴾ په دې وجه اقوالو کې قصد کیدل ضروری دی.په خلاف د افعالو چې دا کله هم واقع کیږي.حقیقت او په رښتیا وي.( یعنی ټوقې او مذاق نه وي ).

ق خو صاحب د نتائج ﷫ د خواب په دې دواړ وجو باندې اعتراض کړې دې.په اول وجه اعتراض دا دې.چه دا په انشاءاتو کې نه چلیږي.ځکه چې انشاءات ایجاد وي.چه ددې د مدلولاتو تخلف جائز نه دې.او دا خبره

ښکاره ده.چه اکثر هغه اقوال کوم چې د شرعی احکامو په افادیت کې شرعاً معتبر دی.هغه د انشاءاتو د قبیلې څخه دی.،، فلا يتم التقريب،، په دویمه وجه دا اعتراض کیږي.چه دا په هغه اقوالو سره ماتیږي په کوم کې چې جد او هزل (حقیقت او مذاق) دواړه برابر دی.لکه طلاق او اعتاق وغیره.

(إِلَّا إِذَا كَانَ فِعْلًا يَتَعَلَّقُ بِهِ حُكْمٌ يَنْدَرِئُ بِالشُّبُهَاتِ كَالْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ) مګر دا چې داسې فعل وی.چه هغې سره څه داسې حکم متعلق وی.چه هغه شبهاتو سره ختمیږي.لکه حدود او قصاص، فَيُجْعَلُ عَدَمُ الْقَصْدِ فِي ذَلِكَ شُبْهَةً فِي حَقِّ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ نو په دې کې به عدم قصد شبه ګرځولې شی.د بچی او مجنون په حق کې.

**تشریح:** مخکنې قول د ،، لا مردها،، نه استثناء ده.مطلب دا دی.چه کله افعال اوموندې شی.نو د هغې نه خلاصې نشته.خو کله چې یو فعل داسې وی.چه هغې سره داسې حکم متعلق وی.کوم چې شبهاتو سره ختمیږي.لکه حدود او قصاص، نو داسې فعل کې د قصد نه کیدل د ماشوم او لیونی په حق کې شبه ګرځولې شی.ترڅو چې په زنا، سرقه، شراب څکل، او شوکه (ډاکه) کاوه سره حد او قتل سره قصاص نه واجبیږي.

### د بچی او د مجنون د عقود حکم

قَالَ (وَالصَّبِيُّ وَالْمَجْنُونُ لَا تَصِحُّ عُقُودُهُمَا وَلَا إِقْرَارُهُمَا) لِمَا بَيَّنَّا او د صبی او مجنون عقدونه صحیح نه دی.او نه ددوی اقرار، په دلیل مذکور سره،

**تشریح:** په «لا یصح» کې د عدم صحت نه مراد عدم نفاذ دی.څکه وړاندې تیر شو.چه «ومن باع من هؤلاء شيئاً فالولي بالخيار» که په مذکورینو کې یوکس اخستل یا خرڅول اوکړی.نو دا د ولی په اجازت باندې موقوف وی.نو مطلب دا شو.چه د بچی او لیونی عقدونه زموږ په نیز نه نافذ کیږي.البته د ولی په اجازت باندې موقوف کیدو سره منعقد کیږي.بیا ددې مسئلې اعاده په اصل مذکور «هذه المعاني الثلاثة توجب الحجر عن الأقوال» باندې د تفریع په طور ده.،، فلا تكرار،،.

(وَلَا يَقَعُ طَلَاقُهُمَا) او نه ددوی طلاق واقع کیږي. (وَلَا عَتَاقُهُمَا) او نه اعتاق. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبی کریم ﷺ د رشاد په وجه، {كُلُّ طَلَاقٍ وَاقِعٌ إِلَّا طَلَاقَ الصَّبِيِّ وَالْمَعْتُوهِ}(۱) چې هرطلاق واقع کیږي.سوا د صبی او د معتوه (ناقص العقل) د طلاق نه،

**تشریح:** د بچی او لیونی نه طلاق واقع کیږي.او نه ددوی اعتاق واقع کیږي.لقوله ﷺ «كل طلاق جائز إلا طلاق المعتوه المغلوب على عقله» ددې حدیث په اړه کې امام ترمذی رحمه الله فرمائیلی دی.چه موږ دا د مرفوع په طور صرف د عطاء بن عجلان روایت سره پیژنو.او دا راوی ضعیف او ذاهب الحديث دی.په دې وجه په دې باب کې غوره استدلال په «رفع القلم عن ثلاث» سره دی.چه دا د حضرت عائشه، حضرت علی، ابوقتاده، ابوهریره، ثوبان، او د حضرت شداد بن اوس رضی الله عنه شپږو صحابه کرامو نه په طریقه د صحاح او حسان نقل دی.

د حضرت عائشة رضی الله عنها د حدیث تخریج ابوداؤد، نسائی، ابن ماجه او حاکم کړې دی. «أن رسول الله ﷺ قال: رفع القلم عن ثلاث عن النائم حتى يستيقظ و عن المبتلى حتى يبرأ و عن الصبي حتى يكبر» ،، نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو.چه د دریو کسانو نه قلم اوچت کړې شو.یو د اوده شوی نه تردې چې بیدار شی.او د لیونی نه تردې چې ښه شی.او د ماشوم نه تردې چې بالغ شی ،، ددې په اسناد کې حماد بن ابی سلیمان رحمه الله د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله استاد دې.چه ددوی په حفظ کې د ابن سعد او اعمش کلام دې.خو امام نسائی ، عجلی ،او یحیی بن معین وغیره ثقه وئیلی دی.

---

(۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب بهذا اللفظ وأخرج الترمذي (أي في الطلاق باب ۱۵ رقم ۱۱۹۱)... عن أبي هريرة رضي الله عنه قال قال [رس]ول الله ﷺ كل طلاق جائز إلا طلاق المعتوه المغلوب على عقله)_



د حضرت علی رضی الله عنه حدیث په مختلف طرق سره نقل دې.او د ټولو نه غوره طریق د امام ابوداؤد ده. «عن يونس وهب عن جرير بن حازم عن سليمان بن مهران (الأعمش) عن أبي ظبيان عن حصين بن جندب عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: مر على علي بن أبي طالب بمجنونة بني فلان وقد زنت فأمر عمر بن الخطاب رضي الله عنه برجمها فردها علي رضي الله عنه و قال علي رضي الله عنه يا أمير المؤمنين أترجم هذه؟ قال: نعم قال أو ما تذكر أن رسول الله ﷺ قال: رفع القلم عن ثلاث عن المجنون المغلوب على عقله و عن النائم حتى يستيقظ و عن الصبي حتى يحتلم قال صدقت فخلى سبيلها» ،، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی.چه حضرت علی رضی الله عنه د یوې قبیلې په لیونۍ ښځه باندې تیر شو.چه هغې زنا کړې وه.حضرت عمر رضی الله عنه د هغې د رجم حکم ورکړو نو حضرت علی رضی الله عنه ددې تردید اوکړو ،او وې وئیل.امیرالمؤمنین ! آیا تاسو به دوی سنګسار کوئ؟ وې فرمائیل آؤ، حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل.آیا تاسو ته یاده نه ده.چه نبی کریم ﷺ ارشاد فرمائیلې دې.چه: رفع القلم......

د حضرت ابوقتاده رضی الله عنه د حدیث تخریج حاکم په مستدرك کې ، د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د حدیث تخریج بزار په مسند کې ،او د حضرت ثوبان او د حضرت شداد رضی الله عنهما د حدیث تخریج طبرانی په مسندالشامیین کې کړې دې.

وَالْإِعْتَاقُ يَتَمَحَّضُ مَضَرَّةً،او آزادول صرف ضرر دی. وَلَا وُقُوفَ لِلصَّبِيِّ عَلَى الْمَصْلَحَةِ فِي الطَّلَاقِ بِحَالٍ لِعَدَمِ الشَّهْوَةِ،او بچی ته په طلاق کې مصلحت باندې وقوف نشته.په هیڅ حال کې د عدم شهوت په وجه. وَلَا وُقُوفَ لِلْوَلِيِّ عَلَى عَدَمِ التَّوَافُقِ عَلَى اعْتِبَارِ بُلُوغِهِ حَدَّ الشَّهْوَةِ،او ولی ته هم په موافقت نه کیدلو باندې خبرداری نشته.د صبی د حد بلوغ پورې د رسیدلو په اعتبار باندې، فَلِهَذَا لَا يَتَوَقَّفَانِ عَلَى إِجَازَتِهِ په دې وجه دا د ولی په اجازت باندې نه موقوف کیږي. وَلَا يَنْفُذَانِ بِمُبَاشَرَتِهِ،او پخپله د ولی په کاوه هم دا نه نافذ کیږي. بِخِلَافِ سَائِرِ الْعُقُودِ. په خلاف د نورو عقدونو،

**تشریح:** او آزادول خالص ضرر دی.چه دا بالکل ښکاره دی.پاتې شو طلاق نو ددې د نفع او نقصان په منځ کې دائر کول اګرچه ممکن دی.په دې اعتبار سره چې د بلوغ نه روسته د زوجینو د اخلاقو په منځ کې موافقت وی.خو بچی ته د طلاق په مصلحت باندې نه فی الحال علم (او پوهه) شته.او نه په مآل (راروانه زمانه) کې شته.فی الحال خو څکه نشته.چه شهوت نه لری.او په مستقبل کې څکه نشته.چه د طلاق په مصلحت باندې خبریدل د شهوت حد ته د رسیدلو نه روسته د اخلاقو د تباین او د طبعیتونو د تنافر په علم باندې موقوف دې.حالانکه بچی ته علم نشته.او دده د ولی فی الحال د طلاق مصلحت نه خبریدل اګرچه ممکن دی.خو د بالغ کیدو نه روسته په دوی دواړو کې دموافقت نه کیدلو علم ولی ته هم نشی کیدې.په دې وجه طلاق یا عتاق د ولی په اجازت باندې نه موقوف کیږي.او نه د ولی پخپله کاوه سره د ماشوم او مجنون طلاق او عتاق نافذ کیږي.په خلاف د نورو عقدونو یعنی د بیع او شراء، د هبۀ او د صدقې قبلولو، چې په دې کې مصلحت باندې خبریدل ممکن دی.

### د بچی یا د مجنون د اتلاف حکم

قَالَ (وَإِنْ أَتْلَفَا شَيْئًا) او که دوی څه شئ هلاك کړو (لَزِمَهُمَا ضَمَانُهُ) نو په دوی به ددې ضمان لازم وی.د کوم کس چې حق هلاك کړې شوې دې. إِحْيَاءً لِحَقِّ الْمُتْلَفِ عَلَيْهِ،دهغه د حق ژوندی کاوه دپاره، وَهَذَا لِأَنَّ كَوْنَ الْإِتْلَافِ مُوجِبًا لَا يَتَوَقَّفُ عَلَى الْقَصْدِ او ددې وجه دا ده.چه هلاکت د ضمان موجب کیدل قصد باندې موقوف نه دې. كَالَّذِي يَتْلَفُ بِانْقِلَابِ النَّائِمِ عَلَيْهِ لکه چې یو شئ د اوده شوی په اړخ اړولو سره هلاك شی. وَالْحَائِطِ الْمَائِلِ بَعْدَ الْإِشْهَادِ،او لکه یو راکوږ دیوال د اشهاد نه پس، بِخِلَافِ الْقَوْلِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ په خلاف د تصرف قولی،

**تشریح:** که بچی یا لیونی یو شئ هلاك کړو.نو د کوم کس حق چې هلاك شوې دې.د هغه د حق په خاطر به دواړو باندې تاوان لازم وی.څکه چې هلاکیدلو باندې د ضمان وجوب، په قصد باندې موقوف نه دې لکه مثلاً څوك اوده کس په یو شئ باندې راپریوځی.او هغه ضائع کړی.یا کوږ دیوال راپریوځی.او هغه په دې باندې ګواهان قائم کړې وی.نو تاوان لازمیږي.

## د غلام د اقوالو او افعالو حکم

قَالَ: (فَأَمَّا الْعَبْدُ فَإِقْرَارُهُ نَافِذٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ) بهرحال غلام نو دده اقرار نافذ دي.پخپله دده په حق کي، لِقِيَامِ أَهْلِيَّتِهِ د اهلیت د قیام په وجه نافذ نه دي. (غَيْرُ نَافِذٍ فِي حَقِّ مَوْلَاهُ) (رِعَايَةً لِجَانِبِهِ) دده د آقا په حق کي، دده د اړخ د رعایت دپاره. لِأَنَّ نَفَاذَهُ لَا يَعْرَى عَنْ تَعَلُّقِ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ أَوْ كَسْبِهِ،خکه چي ددې نفاذ خالی نه دې.د پور متعلق کیدو نه.دده دسټ یا مزدورئ سره، وَكُلُّ ذَلِكَ إِتْلَافُ مَالِهِ.او دا واړه د آقا مال هلاکول دی. قَالَ: (فَإِنْ أَقَرَّ بِمَالٍ) نو که ده د یو مال اقرار اوکړو. (لَزِمَهُ بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ) لِوُجُودِ الْأَهْلِيَّةِ وَزَوَالِ الْمَانِعِ نو هغه به دده د آزادئ نه روسته لازمیږی.د اهلیت د وجود او د مانع د زوال په وجه، وَلَمْ يَلْزَمْهُ فِي الْحَالِ لِقِيَامِ الْمَانِعِ او فی الحال به نه لازمیږی.د مانع د قیام په وجه.

تشریح: په تیرشوی قول «والصبی و المجنون لا یصح» باندې معطوف دي.مطلب دا دې.چه غلام د یوځیز اقرار اوکړی.نو هغه به پخپله دده په حق کي نافذ وی.خکه چي په ده کي د اقرار لیاقت موجود دې.خو د آقا په حق کي به نه نافذ کیږی.نو که ده دا اقرار اوکړو.چه ما د زید د زر روپو مال ضائع کړو.نو غلام به د آزادئ نه روسته گرفتارولې شی.او د آقا دحق په وجه به فی الحال نشی نیولې.د دواړو طرفونو رعایت هم په دې کي دې.خکه چي دغلام د اقرار نافذ کیدل، دده د سټ یا مزدورئ سره د پور متعلق کیدلو نه خالی نه دی.او دا په هرصورت کي مال هلاکول دی.او د آزادئ نه روسته به خکه نیولې شی.چه په ده کي د اقرار اهلیت موجود دې.او امر مانع، یعنی د آقا د حق رعایت زائل شو.

(وَإِنْ أَقَرَّ بِحَدٍّ أَوْ قِصَاصٍ) او که د حد یا قصاص اقرار ئې اوکړو. (لَزِمَهُ فِي الْحَالِ) نو فی الحال به لازمیږی. لِأَنَّهُ مُبْقًى عَلَى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِي حَقِّ الدَّمِ خکه چي هغه د وینې په حق کي اصلی آزادئ باندې پاتـه ساتلې شوې دې. حَتَّى لَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْمَوْلَى عَلَيْهِ بِذَلِكَ تردې چي په ده باندې د آقا اقرار( د حد او قصاص) صحیح نه دې.

تشریح: او که غلام د حد یا قصاص اقرار اوکړو.نو په دې کي به فی الحال نیولې کیږی.خکه چي د حد او قصاص په حق کي غلام پخپلې اصلی آزادئ باندې پاته ساتلې شوې دې.وجه دا ده.چه حد او قصاص د سړی توب د خواصو څخه دی.او غلام د سړي کیدلو په حیثیت سره نه مملوك کیږی.بلکه د مال کیدو په حیثیت سره مملوك کیږی.هم دا وجه ده.که آقا پخپل غلام باندې د حد یا قصاص اقرار اوکړی.نو نه صحیح کیږی.

سوال: د حد او قصاص د اقرار په نفاذ کي هم د آقا د حق بطلان دې؟

جواب: دا بطلان ضمنی دې. «والضمنی لا یعتبر»

(وَيَنْفُذُ طَلَاقُهُ) لِمَا رَوَيْنَا،او دده طلاق به نافذ کیږی.په دلیل د مذکوره حدیث، وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبی کریم ﷺ ددې ارشاد په وجه چه،، {لَا يَمْلِكُ الْعَبْدُ وَالْمُكَاتَبُ شَيْئًا إِلَّا الطَّلَاقَ}(۱) غلام او مکاتب د هیڅ شئ مالك نه دې سوا د طلاق نه،، وَلِأَنَّهُ عَارِفٌ بِوَجْهِ الْمَصْلَحَةِ فِيهِ او خکه چي غلام په طلاق کي مصلحت پیژني. فَكَانَ أَهْلًا نو هغه ددې اهل دې. وَلَيْسَ فِيهِ إِبْطَالُ مِلْكِ الْمَوْلَى او په دې کي نه د آقا د ملك ابطال دې. وَلَا تَفْوِيتُ مَنَافِعِهِ او نه دده منافع فوت کول دی. فَيَنْفُذُ نو دا به نافذ کیږی. وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ.

تشریح: او د غلام طلاق ورکول به نافذ کیږی.په دلیل د تیرشوی حدیث «کل طلاق جائز إلا طلاق المعتوه المغلوب علی عقله» او په دې دلیل سره چي نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: «لایملك العبد والمکاتب شیئاً إلا الطلاق» او په دې وجه هم چي په طلاق کي غلام خپل مصلحت پیژنی.نو ده ته د طلاق لیاقت حاصل دې.او په دې کي نه د آقا

(۱) من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما أخرجه ابن ماجه فی الطلاق باب ۳۱ رقم (۲۰۸۱)_



د ملك ابطال دې.او نه دده منافع فوت کیدل دی.نو طلاق به نافذ کیږی.

فائده: علامه زیلعی رحمه الله فرمائی.چه مذکوره حدیث د «لایملك العبد» الفاظو سره غریب دې.البته امام ابن ماجه رحمه الله د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړې دې. «قال: أتی النبی ﷺ رجل فقال: یارسول الله ﷺ أن سیدی زوجنی أمته و هو یرید أن یفرق بینی و بینها فصعد النبی ﷺ المنبر وقال: یا أیها الناس ما بال أحدکم یزوج عبده أمته ثم یرید أن یفرق بینهما إنما الطلاق لمن أخذ بالساق» ،، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی.چه یو غلام په خدمت کي حاضر شو.عرض ئې اوکړو.ایئ د الله رسوله ﷺ ! زما آقا خپلې وینځې سره زما نکاح کړې ده.او اوس هغه زما او د هغې په منځ کي جدائی کول غواړی.نو نبی کریم ﷺ ممبر ته تشریف راوړلو.او وې فرمائیل: خلگو څه حال دې.چه په تاسو کي یوکس د خپل غلام نکاح خپلې وینځې سره کوی.بیا غواړی.چه دوی دواړه جلا کړی.حالانکه طلاق هم هغه کس ورکولې شی.چا چي لینگئ نیولې ده،، ددې په اسناد کي اگرچه ابن لهیعه دې.چه دده په اړه کي خلگو کې کلام کړې دې.خو امام احمد او طحاوی رحمهما الله ده ته ثقه وئیلی دی.،، وکفی بهما حجة،،

## بَابُ الْحَجْرِ لِلْفَسَادِ

ژباړه: (دا) باب د فساد په وجه د محجور کاوه (په بیان کي) دې.

تشریح: ددې باب د مؤخر کاوه وجه دا ده.چه وړاندې کوم اسباب د حجر وو.هغه سماوی دی.او دلته چي کوم سبب د حجر دې.هغه پخپله د بنده کسب دې.او سماوی امر په تاثیر کي زیات مضبوط وی.نو هم هغه د تقدیم مناسب دې.او په دې وجه هم په تیر شوی باب کي کوم حجر ذکر دې.هغه متفق علیه دې.او دلته چي کوم حجر دې.دا مختلف فیه دې. «و المتفق علیه احری بالتقدیم».

تشریح: په عنایه او بنایه وغیره کي دی.چه دلته د فساد نه مراد ،،سفه،، دې.په احکام القرآن کي دی.چه ،،سفه،، په اصل کي خفت (او کموالی) ته وائی. «یقال: سفهت الریح الشجر» هوا ونه راکښته کړله.و منه قول الشاعر~

مشین کما إهتزت رماح تسفهت ۞ اعالیها مر الریاح النواسم

وقول آخر: نخاف أن تسفه احلامنا ۞ فنحمل الدهر مع الحامل

تنبیه: جاهل ته سفیه څکه وائی.چه هغه خفیف العقل یعنی ناقص العقل وی.نو د جهل معنی هرهغه کس ته گډ ده.په چا چي د سفیه لفظ اطلاق کیږی.تردې چي سفیه فی الدین به هغه وی.څوك چي د دین په معامله کي جاهل وی.او سفیه فی المال به هغه وی.څوك چي د مال د ساتنه نه ناخبره وی.او سفیه فی الرائ به هغه وی.چه هغه ناقص العقل وی.ماشومانو او ښځو ته سفهاء څکه وئیلې شی.چه ددوی په عقل او تمیز کي نقصان وی.

بهرحال ،،سفه،، ناپوهتیا او د عقل کموالی ته وائی.کوم چي انسان ته په قهر او غصې یا فرحت او خوشحالئ سره لاحق کیږی.او دده د عقل قائمیدلو باوجود د شرع موجب نه په خلاف عمل کولو، او د خواهشاتو تابعداری کاوه باندې راضی کوی.د فقهاؤ په عرف کي ددې غالب استعمال د فضول خرچئ لپاره کیږی.کوم چي د عقل او شرع خلاف وی.نو ددې نه علاوه د نورو گناهونو ارتکاب مثلا شراب څکل، زناکاری ، د سفیه په اصطلاحی تعریف کي داخل نه دی.علامه حموی رحمه الله فرمائی.چه په نفقه کي اسراف یا بې مقصده خرچ کول د سفیه عادت دې.دغه ډول په داسې مقصد کي خرچ کول کوم چي دیندار عاقلان مقصد نه شماری.مثلاً ډمانو (او گانو بجانو والا)، لوبو او تماشو کونکو ته پیسې ورکول، اوچتې الوتونکې کوترې په گران قیمت باندې اخستل وغیره.

تنبیه: صاحب د نهایه او صاحب د بنایه رحمهما الله فرمائیلی دی.چه ددې باب تولې مسئلې د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبنی دی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې مبنی نه دی.خکه چي امام ابوحنیفه رحمه الله د ،،سفه،، په وجه د حجر قائل نه دې.په دې باندې صاحب د نتائج رحمه الله لیکلی دی.چه دا خبره ټیك نه ده.خکه چي ددې

باب اکثرو مسئلو باندې د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اتفاق دی مثلاً ① إن أعتق عبداً نفذ عتقه ② لو دبر عبده جاز ③ لو جاءت جاريته بولد فادعاه ثبت نسبه منه و كان الولد حراً و الجارية أم ولده ④ إن تزوج إمرأة جاز نكاحها و إن سمى لها مهراً جاز منه مقدار مهر مثلها ⑤ لو طلقها قبل الدخول وجب لها النصف ⑥ و تخرج الزكاة من مال السفيه و ينفق على أولاده و زوجته و من تجب نفقته من ذوي أرحامه ⑦ إن أراد حجة الإسلام لم يمنع منها ⑧ لو أراد عمرة واحدة لم يمنع منها ⑨ إن مرض و أوصى بوصايا في القرب و أبواب الخير جاز ذالك في ثلث ماله ⑩ ولا يحجر الفاسق عندنا إذا كان مصلحاً لما له.

[1] ددې نه روسته تې ونیلی دی چه په دې باب کې د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله په منځ کې چې کومې اختلافي مسئلې دی هغه صرف درې دی چه د هغې نه دوې (دوه) مسئلې په هدایه او بنایه کې د باب په پیل کې ذکر دی ① یوه دا چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سفیه باندې حجر نشي کیدې د صاحبینو رحمهما الله په نیز کیداې شي ② دویمه مسئله دا ده چه کوم هلك د ،،سفه،، په حالت کې بالغ شي او پنځیشتو کالو ته اورسیږي نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دده مال ده ته سپارلې کیږي اګرچه په ده کې د عقلمندۍ آثار نه وي ښکاره شوي او د صاحبینو رحمهما الله په نیز ترکومه پورې چې د عقلمندۍ آثارنه وي ښکاره شوي تر هغه وخته پورې به مال نشي ورکولې ③ او یوه مسئله صرف په هدایه کې د باب په آخر کې ذکر ده او هغه دا چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز به قاضي د غفلت په وجه حجر کوي.

[1] بیا په رومبو دوارو مسئلو کې هم د امام ابوحنیفه رحمه الله قول په ذکر کې اصل ګرځولې شوې دې او د صاحبینو رحمهما الله قول ئې ددې تابع کړې دې ددې باب صرف یوه مسئله داسې پاتې شوه چه هغه د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبني ده د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول مبني نه ده او هغه آخري مسئله ده چه صرف په هدایه کې ذکر ده نو دا ونیل صحیح نه دي چه ددې باب ټولې مسئلې د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبني دي البته که قائل ددې په ځائې داسې ونیلي وو چه دا باب د ،، باب الحجر للفساد،، په لقب سره ملقب کول د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبني دي د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې مبني نه دي نو په یوه درجه کې به دا صحیح وه.

## په سفیه ناپوهه باندې د حجر حکم

(قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي. لَايُحْجَرُعَلَى الْحُرِّالْبَالِغِ الْعَاقِلِ السَّفِيهِ، چې په آزاد، عاقل، بالغ سفیه باندې به حجر نشي کولې وَتَصَرُّفُهُ فِي مَالِهِ جَائِزٌ او دده تصرف دده په مال کې جائز دې وَإِنْ كَانَ مُبَذِّرًا مُفْسِدًا يُتْلِفُ مَالَهُ فِيمَا لَا غَرَضَ لَهُ فِيهِ وَلَا مَصْلَحَةَ. اګرچه دې فضول خرچه او مفسد وي مال برباده وي په هغه ځیزونو کې په کوم کې چې دده نه څه فائده شته او نه مصلحت، وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله(1) امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله فرمائي وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللَّهُ: او هم دا د امام شافعي رحمه الله قول دې يُحْجَرُعَلَى السَّفِيهِ چې په سفیه به حجر کولې شي وَيُمْنَعُ مِنَ التَّصَرُّفِ فِي مَالِهِ) او هغه به پخپل مال کې تصرف کاوه نه منع کولې شي

تشریح: د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز آزاد، عاقل، بالغ سړې باندې دده د سفاهت په وجه حجر نشي کیدلې بلکه پخپل مال کې به دده تصرف جائز وي اګرچه دې داسې فضول خرچه وي چه خپل مال په داسې کارونو کې خرچ کړي چه هغې کې نه دده څه مقصد وي او نه مصلحت، مثلاً مال په دریاب کې ډوبه وي، یا ئې په اور کې سوزوي د سفیه د حجر په اړه کې د عبیدالله بن الحسن قول هم د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول پشان دې او د حضرت ابراهیم نخعي رحمه الله نه هم دا نقل دي. «أنه قال: لا يحجر على حر» او د محمد بن سیرین او حسن بصري رحمهما الله نه هم دغه ډول نقل دي. «لا يحجر على حر إنما يحجر على العبد».

[1] د صاحبینو او ائمه ثلاثه رحمهم الله په نیز به سفیه باندې حجر کولې شي او دې به پخپل مال کې د داسې

(1) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في ردالمحتار (۱۰۳/۵) والبحرالرائق (۱۴۶/۸) ومجمع الأنهر (۵۳/۴) نقلاً من القول الراجح (۲۵۰/۱۲)_



تصرف کاوه نه منع کولې شي چه هغه د فسخ احتمال لرئ لکه بیع او شراء او اجاره وغیره. البته په کومو کارونو کې چې د فسخ احتمال نشته هغې کې به حجر نشي کولې لکه طلاق او عتاق او د حدود د قصاص اقرار، او نکاح وغیره.

## د صاحبینو رحمهما الله دلیل

لِأَنَّهُ مُبَذِّرٌ مَالَهُ بِصَرْفِهِ ځکه چې دې پخپل مال کې فضول خرچ دې. لَا عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي يَقْتَضِيهِ الْعَقْلُ دا په هغه طریقه نه خرچ کوي په کومه طریقه چې عقل غواړي. فَيُحْجَرُ عَلَيْهِ نَظَرًا لَهُ اعْتِبَارًا بِالصَّبِيِّ نو دې به محجور کولې شي دده د بهترۍ دپاره په بچې باندې قیاس کاوه سره. بَلْ أَوْلَى بلکه دې به په طریقه اولی محجور کولې شي. لِأَنَّ الثَّابِتَ فِي حَقِّ الصَّبِيِّ احْتِمَالُ التَّبْذِيرِ ځکه چې د بچې په حق کې د فضول خرچۍ صرف احتمال ثابت دې. وَفِي حَقِّهِ حَقِيقَتُهُ او د سفیه په حق کې ددې حقیقت ثابت دې. وَلِهَذَا مُنِعَ عَنْهُ الْمَالُ په دې وجه دده نه مال منع کړې شو. ثُمَّ هُوَ لَا يُفِيدُ بِدُونِ الْحَجْرِ بیا خالي ممانعت مفید نه دې د حجر نه بغیر. لِأَنَّهُ يُتْلِفُ بِلِسَانِهِ مَا مُنِعَ مِنْ يَدِهِ. ځکه چې دې به پخپلې ژبې سره ضائع کوي هغه شې کوم چې منع کړې شوې دې دده د لاس نه.

تشریح: د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې چه ذکر شوې سفیه پخپل مال کې فضول خرچه دې چه مال د عقل د تقاضې مطابق نه خرچ کوي نو دده د خیرخواهۍ په لحاظ به محجور کولې شي بلکه د بچې په نسبت به سفیه په درجه اولی محجور کولې شي ځکه چې د بچې په حق کې خو د اسراف او فضول خرچۍ صرف احتمال دې او په سفیه کې دا خبره په حقیقت کې موجود ده په دې وجه به دې د مالي تصرف نه منع کولې شي. قال الله تعالى: ﴿وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمْ﴾ بیا د حجر نه بغیر خالي ممانعت بې فائدې دې ځکه چې هغه به مال د لاس په ځائې په ژبه هلاکه وي.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې. أَنَّهُ مُخَاطَبٌ عَاقِلٌ چې دې مخاطب او عاقل دې. فَلَا يُحْجَرُ عَلَيْهِ اعْتِبَارًا بِالرَّشِيدِ، نو په ده به حجر نشي کولې په عقلمند باندې قیاس کاوه سره. وَهَذَا لِأَنَّ فِي سَلْبِ وِلَايَتِهِ إِهْدَارَ آدَمِيَّتِهِ او دا ځکه دې چه دده ولایت په زبردستۍ اخستلو کې دده سړې توب ختمول، وَإِلْحَاقَهُ بِالْبَهَائِمِ او دې ځاروو سره ملاوول دي. وَهُوَ أَشَدُّ ضَرَرًا مِنَ التَّبْذِيرِ او دا د فضول خرچۍ نه زیات نقصان ده دي. فَلَا يُتَحَمَّلُ الْأَعْلَى لِدَفْعِ الْأَدْنَى، نو اعلی ضرر به نشي برداشت کولې د ادنی ضرر لرې کاوه دپاره.

تشریح: د امام ابوحنیفه رحمه الله د دلیل تشریح دا ده چه سفیه سړې مخاطب هم دې او عاقل هم دې په دې کې رومبې وصف (مخاطب کیدل) د تصرف اهلیت اړخ ته اشاره کوي ځکه چې مکلف کیدل ددې تقاضه کوي چه په استیفاء باندې تمکن (او قدرت) حاصل شي او د تکلیف د موجب مطابق عمل اوکړي او په استیفاء به قدرت هغه وخت حاصلیږي کله چې مالونو ته رسیدل اوشي او مالونو ته رسیدل د تملیك او تملك په ذریعه کیږي. دوهم وصف عاقل کیدل دي چه ددې په ذریعه د تمیز اهلیت ثابتیږي بیا شریعت عقل د تملیك او تملك په اعتبار سره د تصرفاتو یوه لاره مقرر کړې ده او دا ددې معنی په لحاظ سره دي او دا معنی د عقل مند سړي پشان سفیه سړي کې هم موجود ده ځکه چې په ده کې په دومره اندازه عقل موجود وي چه د هغې په وجه الله تعالی دې مخاطب کړې دې که د بچې پشان دې هم بې عقله وو نو د ایمان او شرائعو مخاطب به نه وو نو لکه ځنګه چې عقل او سلامتیا سره تصرف کونکې نه محجور کیږي دغه ډول به سفیه هم نه محجور کیږي ګنې ښکاره ده چه دده ولایت په زبردستۍ اخستل، ګویا دې د سړي توب نه غورځول، او ځاروو سره ملاوول دي حالانکه ددې نقصان د فضول خرچۍ په نسبت ډیر زیات دې نو د معمولي ضرر (یعنی فضول خرچۍ) اعلی ضرر (حجر) نشي برداشت کولې ځکه چې مال یو زیاتي نعمت دې او د ژبې بندیز نه کیدل اصلي نعمت دې نو سړي چې په نورو حیواناتو کومه مرتبه او فوقیت لري هغه د خپلو قولي تصرفاتو په اعتبار سره لري.

حَتّٰى لَوْ كَانَ فِي الْحَجْرِ دَفْعُ ضَرَرٍ عَامٍّ كَالْحَجْرِ عَلَى الْمُتَطَبِّبِ الْجَاهِلِ وَالْمُفْتِي الْمَاجِنِ تردې كه محجور كاوه كې عام ضرر دفع كول وي.لكه جاهل طبيب، بې پرواه مفتي ، وَالْمُكَارِي الْمُفْلِسِ او غريب مكارى باندې حجر كول، جَازَ فِيمَا يُرْوَى عَنْهُ،نو دا جائز دى.په هغه روايت كې كوم چې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دې. إِذْ هُوَ دَفْعُ ضَرَرِ الْأَعْلَى بِالْأَدْنَى،خكه چې دا د ادنى ضرر په ذريعه اعلى ضرر دفع كول دى.

**تشريح:** البته كه په محجور كاوه كې عام ضرر دفع كول وي.مثلاً څوك جاهل سړې طبيب جوړ شو.يا څوك بې پرواه او بې حيا سړې مفتي شي.يا څوك غريب سړې چې هغه سره څاروى وغيره نشته.هغه په كرايه باندې د ور كاوه ټهيكدار شو.نو دوى واړه به محجور كولې شى.لكه څنګه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دى.خكه چې دا د معمولى ضرر په ذريعه اعلى ضرر دفع كول دى.

**سوال**۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله د اړخه د علامه مرغينانى رحمه الله پيش شوى دليل ﴿انه مخاطب عاقل﴾ باندې دا اشكال كيږي.چه دا دليل غلام سره ماتيږي.چه غلام هم مخاطب او عاقل دې.ددې باوجود هغه باندې حجر كولې شي ؟

**جواب**۞ ددې څواب په دوې «دوه» طريقو دې.① يو دا چې دلته كې لفظ مخاطب مطلق دې.او مطلق خپل كامل فرد اړخ ته واپس كيږي.او غلام كامل مخاطب نه دې.خكه چې دده نه ډير مالى خطابات لكه زكاة، صدقة فطر(سرسايه)، اضحيه ( قربانى ) مالى كفارات، او بعض غيرمالى خطابات مثلاً حج، جمعه، د اخترونو مونځونه، شهادات وغيره ساقط دى.② دوهم څواب دا دې.چه د مخاطب نه مراد په دلالت د محل د كلام هغه دې.كوم چې د مالى تصرفاتو مخاطب وى.خكه چې بحث د مسئلې د مالى تصرفاتو نه د حجر په اړه كې دې.لكه بيع او شراء، هبې او صدقات وغيره.په دې صورت كې مذكوره قول ﴿انه مخاطب﴾ غلام ته ګډ نه دې.خكه چې د غلام هيڅ مال نه وى.

### د صاحبينو رحمهما الله د قياس جواب

وَلَا يَصِحُّ الْقِيَاسُ عَلَى مَنْعِ الْمَالِ او په مال منع كاوه باندې قياس كول صحيح نه دې. لِأَنَّ الْحَجْرَ أَبْلَغُ مِنْهُ فِي الْعُقُوبَةِ، وَلَا عَلَى الصَّبِيِّ خكه چې محجور كول، ددې نه زيات دى.په حجر كې نه په بچي باندې قياس كول صحيح دى. لِأَنَّهُ عَاجِزٌ عَنِ النَّظَرِ لِنَفْسِهِ،خكه چې هغه د خپلې فائدې د فكر نه عاجز دې. وَهٰذَا قَادِرٌ عَلَيْهِ نَظَرَ لَهُ الشَّرْعُ مَرَّةً بِإِعْطَاءِ آلَةِ الْقُدْرَةِ او دې په دې باندې قادر دې.په كوم چې شرع آلات د قدرت عطاء كړې دى.او د شفقت نظر ئې كړې دې. وَالْجَرْيُ عَلَى خِلَافِهِ لِسُوءِ اخْتِيَارِهِ،او ددې په خلاف باندې تلل، دده د بد اختيارولو په وجه دى.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قياس ﴿و لهذا منع عنه المال﴾ څواب دې.چه سفيه باندې د حجر جواز، د مال د منع په جواز باندې قياس كول صحيح نه دې.خكه چې منع د مال خو په طريقه د عقوبت او د سزا په طور دى.چه دده په فضول خرچئ باندې تنبيه وى.او د مال منع كاوه په نسبت محجور كاوه كې عقوبت زيات دې.نو زيات قوى شئ د خپل نه په كم او ضعيف شئ باندې قياس كول صحيح نه دى.او دده د دوهم قياس ﴿اعتبارا بالصبى﴾ څواب دا دې.چه سفيه په صبى باندې قياس كول هم صحيح نه دى.خكه چې صبى ته پخپله معامله كې د بهترئ د فكر كاوه اهليت نشته.او سفيه ته دا قدرت حاصل دې.خكه چې ده ته آزادى ، عقل او بلوغ وركړې شوې دې.خو هغه پخپلې بد اختيارئ سره ددې په خلاف لاره باندې چليږي.نو دا د قادر په عاجز باندې قياس كول شو.چه دا فاسد دى.

وَمَنْعُ الْمَالِ مُفِيدٌ او مال منع كول مفيد دى. لِأَنَّ غَالِبَ السَّفَهِ فِي الْهِبَاتِ وَالصَّدَقَاتِ خكه چې اكثر بې وقوفى ، په هبو او صدقو كې كيږي. وَذٰلِكَ يَقِفُ عَلَى الْيَدِ او دا د مال په قبضه باندې موقوف دې.

**تشريح:** دا د صاحبينو رحمهما الله د قول ﴿ثم هو لا يفيد بدون الحجر﴾ څواب دې.چه د مال نه منع كول د حجر نه بغير مفيد دى.خكه چې اكثر بې وقوف توب په تبرعاتو (احساناتو) او صدقاتو كې كيږي.او دا د مال په



قبضه باندې موقوف دې.كله چې دده په قبضه كې هيڅ نه وى.نو هغه هيڅ نشى كولې.

**د امام صاحب نقلى دليل**۞ د امام ابوحنيفه رحمه الله نقلى دليل دا دې.چه د نبى كريم ﷺ په وړاندې د حضرت حبان بن منقذ رضي الله عنه تذكره اوشوه.چه هغوى به اكثر په اخستلو خرڅولو كې دهوكه خوړله.نو نبى كريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو.چه ته د اخستلو نه روسته داسې وايه چه ﴿لا خلابة﴾ په دې كې به دهوكه نه وى.(صحيحين عن ابن عمر

**د صاحبينو رحمهما الله نقلى دليل**۞ د صاحبينو دليل د الله تعالى ارشاد دې. ﴿فَإِنْ كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ﴾،،بيا كه هغه كس په چا چې قرضه ده.بې عقله دې.يا ضعيف دې.يا پخپله نشى خودلې.نو اودې ښائى.كارګزار دده په انصاف سره،، ددې آيت نه صفا معلوميږي.چه سفيه باندې دده د ولى ولايت حاصل دې.په درمختار كې دى.چه فتوى د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.

### د يو قاضى دبل قاضى د حجر ماتولو حكم

قَالَ (وَإِذَا حَجَرَ الْقَاضِي عَلَيْهِ كه قاضى په ده باندې حجر اولګولو. ثُمَّ رُفِعَ إِلَى قَاضٍ آخَرَ بيا بل قاضى اړخ ته مرافعه اوشوه. فَأَبْطَلَ حَجْرَهُ او هغه دا حجر ختم كړو. وَأَطْلَقَ عَنْهُ جَازَ) او هغه ته ئې اختيار وركړو.نو جائز دې. لِأَنَّ الْحَجْرَ مِنْهُ فَتْوَى وَلَيْسَ بِقَضَاءٍ،خكه چې د قاضى د اړخه محجور كول، يوه فتوى ده.قضاء نه ده. أَلَا يُرَى آيا نه ګورې. أَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الْمَقْضِيُّ لَهُ وَالْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ، چې مدعى او مدعى عليه او نه موندې شو.

**تشريح:** دا د سفيه د حجر په مسئله باندې متفرع ده.او په قول د علامه انزارى رحمه الله د يو سوال څواب دې.

**سوال**۞ تقرير د سوال دا دې.كه قاضى د خپلې رائې موافق سفيه محجور كړي.او يو بل قاضى ته ددې مرافعه اوكړې شوه.او هغه د ړومبى قاضى حجر مات كړي.او محجور اختيار مند كړي.نو ته وائې.چه د حجر نه روسته به ددې محجور تصرف جائز وى.حالانكه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نافذ كيدل پكار نه دى.خكه چې د ړومبى قاضى فيصله په مجتهد فيه مسئله كې واقع شوې ده.او په مجتهد فيه مسئلو كې د قاضى فيصله قابل د نقص ( د ماتيدو قابل) نه وى.بلكه بالاتفاق نافذ كيږي.لكه بيع د مدبر، قضاء على الغائب، او ويش د غنيمتونو وغيره مسئلو كې دى.او هركله چې د ړومبى قاضى فيصله ختمه نشوه.بلكه نافذ پاتې شوه.نو مذكوره سفيه محجور شو.نو د حجر نه روسته دده تصرف نافذ كيدل پكار نه دى ؟

**جواب**۞ تشريح د څواب دا ده.چه قضاء لپاره د خصومت كيدل ضرورى دى.خكه چې د قضاء مشروعيت د خصوماتو د فيصلو لپاره دې.او د خصومت لپاره د دعوې او انكار موجوديدل، او د مقضى له او مقضى عليه كيدل ضرورى دى.او دلته په دوى كې يو هم او نه موندې شو.نو د قاضى محجور كول،صرف يوه فتوه شوه.د قضاء حكم نشو.خكه قضاء خو دې ته وائې.چه غيرثابت، ثابت كړي.او دلته مذكوره سفيه د قاضى د قضاء نه وړاندې محجور وو. ﴿فكان مثبتا ما كان ثابتا فلا يكون قضاء﴾

وَلَوْ كَانَ قَضَاءً فَنَفْسُ الْقَضَاءِ مُخْتَلَفٌ فِيهِ او كه قضاء وى.نو نفس قضاء مختلف فيه ده. فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِمْضَاءِ نو نافذ كول ضرورى دى. حَتّٰى لَوْ رُفِعَ تَصَرُّفُهُ بَعْدَ الْحَجْرِ إِلَى الْقَاضِي الْحَاجِرِ تردې كه مرافعه اوكړې شوه.دده د يو تصرف. د حجر نه پس، هم دغه حجر كونكى قاضى أَوْ إِلَى غَيْرِهِ يا دده نه علاوه اړخ ته. فَقَضٰى بِبُطْلَانِ تَصَرُّفِهِ او هغه دده تصرف باطلولو حكم وركړو. ثُمَّ رُفِعَ إِلَى قَاضٍ آخَرَ بيا يو بل قاضى ته مرافعه اوكړې شوه. نَفَذَ إِبْطَالُهُ لِاتِّصَالِ الْإِمْضَاءِ بِهِ نو هغه به ددې ابطال نافذ كوى.ددې سره د قاضى د امضاء (او حكم) متصل كيدو په وجه. فَلَا يَقْبَلُ النَّقْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ اوس ددې نه روسته دا نشى ماتيدې.

**تشريح:** او كه مونږ د ړومبى قاضى د محجور كولو حكم، په لرې احتمال سره قضاء اومنو.په دې طريقه چې سفيه مقضى عليه اوګرځوو.په دې معنى چې حجرهم دده د خيرخواهئ په لحاظ سره دې.او د حجر حكم چونكه دده د مرضئ خلاف دې.په دې لحاظ سره دا مقضى عليه اوګرځوو.په دې طريقه به د مقضى له او

مقضي عليه په يوه درجه كي وجود اوشي.او د قاضي مذكوره حكم به قضاء منلي شي.خو پخپله دا قضاء هم مختلف فيه ده.لكه چي د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز قضاء بالحجر جائز نه ده.او د صاحبينو (رحمهما الله) په نيز جائز ده.او د قاضي په مختلف فيه امر كي حكم كول، د اختلاف لري كونكي؛ هغه وخت وي.كله چي نفس قضاء مختلف فيه نه وي.نو د قاضي مذكوره حكم پخپله محل د قضاء شو.چه ددي د نافذ كاوه لپاره د بلي قضاء حاجت (او ضرورت) دي.ترڅو كه د حجر نه روسته د مذكوره سفيه يو تصرف هم دي قاضي ته پيش كړې شي.چا چي حجر كړې وو.يا ددي مرافعه يو بل قاضي ته اوشي.نو هغه به ددي بطلان پوره كوي.خكه چي دې سره د قاضي حكم متعلق شو.اوس ددې نه روسته دا نشي ماتيدې.

**د بلوغت نه روسته د سفيه (كم عقل) حكم**

ثُمَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِذَا بَلَغَ الْغُلَامُ غَيْرَ رَشِيدٍ بيا د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز كله چي يو هلك د بې وقوف توب په حالت كي بالغ شي. لَمْ يُسَلَّمْ إِلَيْهِ مَالُهُ نو دده مال به ده ته نشي حواله كولي. حَتَّى يَبْلُغَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ سَنَةً ترڅو چي هغه د پنځيشتو كالو شي. فَإِنْ تَصَرَّفَ فِيهِ قَبْلَ ذَلِكَ او كه ده ددې نه وړاندې په مال كي څه تصرف اوكړو نَفَذَ تَصَرُّفُهُ نو دده تصرف به نافذ وي. فَإِذَا بَلَغَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ سَنَةً كله چي هغه د پنځيشتو كالو شي. يُسَلَّمُ إِلَيْهِ مَالُهُ وَإِنْ لَمْ يُؤْنَسْ مِنْهُ الرُّشْدُ نو مال به ده ته حواله كولې شي.اګرچه دده نه د هوښيار توب آثار نه وي ښكاره شوي.

**تشريح:** كوم سړې چي د بالغ كيدو نه روسته هم دومره هوښيار نه وي.چه خپله نفع نقصان اوپيژني.نو د امام ابوحنيفه (رحمه الله) په نيز به ده ته دده مال نشي وركولې.ترڅو چي دې د پنځيشتو كالو شي.ددې نه روسته به ده ته مال وركولې شي.كه هغه مصلح وي.او كه مفسد وي.د صاحبينو (رحمهما الله) او د آئمه ثلاثه (رحمهم الله) په نيز به مال نشي وركولې.ترڅومه پورې چي د عقل مندئ آثار ښكاره نشي.اګرچه واړه عمر تير شي.

خكه چي آيت ﴿فَإِنْ آنَسْتُمْ مِنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾ كي مال حواله كول د رشد (عقلمندئ) په وجود باندې معلق دي.نو ددې نه وړاندې به مال وركول جائز نه وي.خكه چي د ممانعت علت ،،سفه،، (بې وقوفي) ده.نو ترڅومه پورې چي دا علت پاته پاتې وي.تر هغه وخته پورې به ممانعت هم پاته پاتې وي.او دا د صبي (ماشوم توب) پشان شو.چه ترڅومه پورې ماشوم توب پاته پاتې وي.تر هغه وخته پورې بچي ته اجازت نه وي.

وَقَالَا: صاحبين (رحمهما الله) فرمائي. لَا يُدْفَعُ إِلَيْهِ مَالُهُ أَبَدًا چي دده مال به ده ته كله هم نشي حواله كولې. حَتَّى يُؤْنَسَ مِنْهُ رُشْدُهُ ترڅو چي دده نه هوښيار توب ښكاره شي. وَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُهُ فِيهِ ([1]) او په مال كي به دده هيڅ تصرف جائز نه وي. لِأَنَّ عِلَّةَ الْمَنْعِ السَّفَهُ خكه چي د منع كاوه علت بې وقوف توب دې. فَيَبْقَى مَا بَقِيَ الْعِلَّةُ دا به پاته پاتې وي.ترڅومه چي علت پاته پاتې وي. وَصَارَ كَالصِّبَا. نو او دا د ماشوم توب پشان شو.

**تشريح:** **سوال** په قول د صاحب د عنايه (رحمه الله) لفظ د،، ابد،، او،، حتى،، دواړه جمع كاوه كي تسامح ده؟

**جواب** دا دې.چه د ابد نه مراد اوږده زمانه ده.لكه څنګه چي بعضو مفسرينو په آيت ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا﴾ كي لفظ د خلود په مكث طويل باندې محمول كړې دي. «فلا تدافع بين أبد و حتى».

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ دا امام ابوحنيفه (رحمه الله) دليل دا دې. أَنَّ مَنْعَ الْمَالِ عَنْهُ بِطَرِيقِ التَّأْدِيبِ، چي ددې مال نه منع كول د تاديب په طريقه دي. وَلَا يَتَأَدَّبُ بَعْدَ هَذَا ظَاهِرًا وَغَالِبًا او د دومره مودې نه روسته ښكاره او غالب حالاتو

---

[1]) القول الراجح هو قول الصاحبين (رحمهما الله) كذا في مجمع الأنهر (٥٣\٤) وردالمحتار (١٠٥\٥) والدرالمنتقى (٤\ ٥٣، ٥٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٥١\٢)_



كي ده ته ادب نه راځي. أَلَا تَرَى آيا نه ګورې أَنَّهُ قَدْ يَصِيرُ جَدًّا فِي هَذَا السِّنِّ چي كله كله هغه په دې عمر كي نيكه جوړيږي. فَلَا فَائِدَةَ فِي الْمَنْعِ نو په منع كاوه كي هيڅ فائده نشته. فَلَزِمَ الدَّفْعُ نو مال وركول لازم شو.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه (رحمه الله) د دليل تقرير دا دې چه د سفيه (بې وقوف) نه مال منع كول په طريقه د تاديب دي.يعني علت د منع كم عقل توب سره د قصد د تاديبه دې چه ده ته په فضول خرچئ باندې تنبيه (او خبرداري) وي.او ددې تقاضه دا ده.چه هغه محل د تاديب وي.او سفيه محل د تاديب كيدل هغه وخته پورې دې.ترڅومه پورې چي د ادب قبلولو اميد وي.او ښكاره او غالب هم دا دې چه د پنځيشتو كالو نه روسته ده ته د ادب حاصليدلو هيڅ توقع نه پاتې كيږي.حالانكه بعضو وختونو كي سړې په دومره موده كي نيكه جوړيږي.خكه چي د هلك په حق كي د بلوغ كم نه كمه موده دولس كاله ده.او د حمل كم نه كمه موده شپږ مياشتې ده.اوس مثلاً د دولس كالو په عمر كي دده خوئي پيدا شو.بيا د دولسو كالو نه روسته په شپږمه مياشت دده د خوئ خوئي پيدا شو.نو هغه د پنځيشتو كالو په عمر كي نيكه شو.او هركله چي په دومره موده كي دده فرع هم اصل شو.نو اوس هغه په اصل كيدو كي انتهاء ته اورسيدلو.او د ادب راتلو هيڅ توقع پاتې نشوه.نو په مال منع كاوه كي هيڅ فائده پاتې نشوه.امام محمد (رحمه الله) دې اړخ ته اشاره كړې ده.فرمائي.چي «أرأيت أنه لو بلغ مبلغا صار ولدة قاضيا و له نافلة أكان يحجر على أبيه و يمنع المال منه؟ هذا قبيح».

**سوال** د نيكه لپاره خو صرف د دوې (دوه) ويشتو كالو موده كافي كيږي.مثلاً د دولس كالو په عمر كي د يوكس په شپږمه مياشت لور پيدا شوه.چه هغه په نهمه مياشت بالغه شوه.او د واده نه روسته په شپږمه مياشت ددې بچي پيدا شو.نو هغه په دوې (دوه) ويشتو كالو كي نيكه جوړ شو؟

**جواب** دلته د جد (نيكه) نه مراد جد صحيح يعني د پلار د اړخه نيكه دې.جد فاسد يعني د مور د اړخه نيكه مراد نه دې.خكه چي د مور د اړخه د نيكه هيڅ اعتبار نه كيږي.

وَلِأَنَّ الْمَنْعَ بِاعْتِبَارِ أَثَرِ الصِّبَا او خكه چي منع كول د ماشوم توب په وجه وو. وَهُوَ فِي أَوَائِلِ الْبُلُوغِ چي دا د بلوغ په پيل كي وي. وَيَنْقَطِعُ بِتَطَاوُلِ الزَّمَانِ او په اوږدې زمانې تيريدو سره منقطع كيږي. فَلَا يَبْقَى الْمَنْعُ نو ممانعت به پاته نه پاتې كيږي. وَلِهَذَا قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ: په دې وجه امام ابوحنيفه (رحمه الله) اوفرمائيل. لَوْ بَلَغَ رَشِيدًا كه دې هوښيار بالغ شو. ثُمَّ صَارَ سَفِيهًا بيا سفيه (بې وقوف) شو. لَا يُمْنَعُ الْمَالُ عَنْهُ نو دده څخه به مال نشي منع كولې. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِأَثَرِ الصِّبَا خكه چي دا اوس د ماشوم توب اثر نه دې.

**تشريح:** دا د امام ابوحنيفه (رحمه الله) د اړخه دوهم دليل دې.ددې تقرير دا دې.چه د بلوغ نه روسته كله د عقل مندئ آثار ښكاره نشي.نو منع كول د ماشوم والي په اعتبار سره دي.چه دا د بلوغ ابتدائي زمانې پورې وي.او په اوږدې زمانې تيريدو سره ختميږي.او د اوږدې زمانې اندازه په پنځيشتو كالو سره خكه شوې ده.چه د عمر په لحاظ سره د بلوغ موده اتلس كاله ده.او بلوغ ته نژدې زمانه د بلوغ په حكم كي ده.چه ددې اندازه د اووه كالو نه ده.په ابتداء كي د تميز په مودې باندې قياس كاوه سره.چه دې اړخ ته په حديث «مروا صبيانكم بالصلاة إذا بلغوا سبعة» كي اشاره ده.نو ددې مودې نه روسته ممانعت نه پاتې كيږي.او په دې وجه (چي ممانعت د ماشوم توب په اعتبار سره دې) امام ابوحنيفه (رحمه الله) اوفرمائيل.كه هغه د بلوغ په وخت عقلمند شي.او بيا سفيه (كم عقل) شي.نو دده به مال نشي منع كولې.خكه چي اوس دده بې وقوفي (او كم عقل توب) د ماشوم والي اثر نه دې.

**فائده** د امام ابوحنيفه (رحمه الله) اصل دليل دا آيت ﴿وَآتُوا الْيَتَامَى أَمْوَالَهُمْ﴾ دې.په دې كي مال وركول د بلوغ نه روسته مراد دي.نو د بالغ كيدو نه روسته به مال ده ته حواله كولې شي.پاتې شوه د پنځيشتو كالو موده، نو دا ددې لپاره ده.چه د حضرت عمر فاروق (رضي الله عنه) نه نقل دي.چه كله سړې د پنځيشتو كالو شي.نو دده عقل انتهاء ته رسيږي.په تنوير او مجمع الانهر وغيره كي د قاضي خان نه منقول دي.چه فتوى د صاحبينو (رحمهما الله) په قول ده.

**د صاحبينو رحمهما الله په قول باندې تفريع**

ثُمَّ لَا يَتَأَتَّى التَّفْرِيعُ عَلَى قَوْلِهِ بيا تفريع نشي كيدې. د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول باندې، وَإِنَّمَا التَّفْرِيعُ عَلَى قَوْلِ مَنْ يَرَى الْحَجْرَ. تفريع خو د هغه چا په قول كيداې شي. چه هغه حجر جائز ګڼري. فَعِنْدَهُمَا لَمَّا صَحَّ الْحَجْرُ نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز چې هر كله حجر صحيح دې. لَا يَنْفُذُ بَيْعُهُ نو د محجور بيع به نه نافذ كيږي. إِذَا بَاعَ تَوْفِيرًا لِفَائِدَةِ الْحَجْرِ عَلَيْهِ، كله چې هغه خرڅ كړي. د حجر پوره فائده كيدلو دپاره.

**تشريح:** ابو الحسين قدوري رحمه الله د «ويمنع من التصرف في ماله» نه روسته «فإن باع لم ينفذ بيعه في ماله» ونيلو سره كومه تفريع كړې ده. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه دا تفريع د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول باندې نشي كيدې. ځكه چې امام صاحب رحمه الله حجر ته د سره جائز نه وائي. بلكه تفريع د هغوى په قول باندې كيداې شي. څوك چې حجر ته جائز وائي. نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز چونكه حجر صحيح دې. په دې وجه ددوى په نيز د سفيه بيع نه نافذ كيږي. كله چې هغه د حجر نه روسته خرڅ كړي. چه د حجر پوره فائده ښكاره شي.

وَإِنْ كَانَ فِيهِ مَصْلَحَةٌ او كه په دې كي څه بهتري وي. أَجَازَهُ الْحَاكِمُ نو حاكم اجازت وركولې شي. لِأَنَّ رُكْنَ التَّصَرُّفِ قَدْ وُجِدَ ځكه چې د تصرف ركن اوموندې شو. وَالتَّوَقُّفُ لِلنَّظَرِ لَهُ او توقف دده د بهترئ لپاره وو. وَقَدْ نُصِبَ الْحَاكِمُ نَاظِرًا لَهُ او حاكم ددې بهترئ كتونكې مقرر كړې شوې دې. فَيَتَحَرَّى الْمَصْلَحَةَ فِيهِ، كَمَا فِي الصَّبِيِّ الَّذِي يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ نو دده په حق كي به بهتري ګوري. لكه څنګه چې د هغه صبى ( ماشوم) په حق كي دى. كوم چې په بيع پوهيږي. وَيَقْصِدُهُ او د هغې قصد كوي.

**تشريح:** كه د سفيه په بيع كي څه بهتري وي. په دې طريقه چې دا د اصل قيمت په عوض وي. يا په دې كي نفع وي. او ثمن دده سره پاته هم وي. او حاكم ددې اجازت وركړي. نو دده موقوف بيع به جائز وي. ځكه چې ركن د تصرف چې ايجاب او قبول دې. هغه دلته كي موجود دې. پاتې شو ددې موقوف كيدل، نو هغه دده بهترئ ( او فائدې) ته په كتلو سره وو. او حاكم هم ددې فائدې د كتلو لپاره مقرر كړې شوې دې. نو هغه به دده بهتري ګوري. او اجازت به وركوي. لكه مثلاً هغه بچې كوم چې په اخستلو او خرڅولو پوهيږي. او ددې قصد كوي. نو دده ولي دده فائده ګوري. او اجازت وركوي.

وَلَوْ بَاعَ قَبْلَ حَجْرِ الْقَاضِي او كه ده د قاضي د محجور كاوه نه وړاندې خرڅ كړو. جَازَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو جائز ده. د امام ابويوسف رحمه الله په نيز. لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ حَجْرِ الْقَاضِي عِنْدَهُ، ځكه چې ددوى په نيز د قاضي محجور كول ضروري دى. لِأَنَّ الْحَجْرَ دَائِرٌ بَيْنَ الضَّرَرِ وَالنَّظَرِ ځكه چې حجر د ضرر او نظر په منځ كي دائر دې. وَالْحَجْرُ لِنَظَرِهِ او حجر كول دده د بهترئ لپاره دې. فَلَا بُدَّ مِنْ فِعْلِ الْقَاضِي. نو د قاضي فعل ضروري دې. وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَا يَجُوزُ او د امام محمد رحمه الله په نيز جائز نه دې. لِأَنَّهُ يَبْلُغُ مَحْجُورًا عِنْدَهُ، ځكه چې ددوى په نيز هغه محجور بالغ شوې دې. إِذِ الْعِلَّةُ هِيَ السَّفَهُ بِمَنْزِلَةِ الصِّبَا، ځكه چې علت هم دا سفيه كيدل د ماشوم توب پشان دى. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا بَلَغَ رَشِيدًا او هم په دې اختلاف ( مبنى ) دې. كله چې دې هوښيار بالغ شي. ثُمَّ صَارَ سَفِيهًا او بيا سفيه شي.

**تشريح:** مذكوره حكم په دې صورت كي دې. كله چې سفيه د حجر نه روسته خرڅ كړې وي. او كه ده د قاضي د محجور كاوه نه وړاندې خرڅ كړې وي. نو د امام ابويوسف، امام شافعي، او د امام محمد رحمهم الله په نيز به په دې صورت كي هم بيع جائز وي. ځكه چې د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د قاضي محجور كول ضروري دى. ځكه چې دده حجر د ضرر ( د سړي توب نه غورځولو) او نظر ( بيع دده په ملك كي د پاته ساتلو) په منځ كي دائر دې. او په ده باندې حجر قائمول دده د بهترئ په لحاظ سره دې. نو ددې لپاره د قاضي فعل كيدل ضروري دى. چه يو اړخ نه په بل اړخ باندې ترجيح وركړې شي. البته د امام محمد او امام مالك رحمهما الله په نيز به دده بيع جائز نه وي. ځكه چې ددوى په نيز هغه محجور بالغ شوې دې. ځكه چې دحجر علت چې هغه



سفاهت ( بې وقوف توب) دې. هغه د ماشوم توب پشان دې. او هغه د قضاء نه وړاندې موجود دې. نو حكم به لامحاله په دې مرتب كيږي.

**د سفيه د غلام آزادولو حكم**

فَإِنْ أَعْتَقَ عَبْدًا كه سفيه غلام آزاد كړو. نَفَذَ عِتْقُهُ عِنْدَهُمَا) نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز به دده آزادول نافذ كيږي. وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ لَا يَنْفُذُ. او د امام شافعي رحمه الله په نيز به نه نافذ كيږي.

**تشريح:** كه سفيه د محجور كيدو نه روسته خپل يو غلام آزاد كړي. نو د صاحبينو رحمهما الله (او د امام ابوحنيفه رحمه الله) په نيز به دده اعتاق ( آزادول) نافذ وي. د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز نه نافذ كيږي. ،، وهو قياس قول مالك رحمه الله ،،

وَالْأَصْلُ عِنْدَهُمَا او اصل د صاحبينو رحمهما الله په نيز دا دې. أَنَّ كُلَّ تَصَرُّفٍ يُؤَثِّرُ فِيهِ الْهَزْلُ يُؤَثِّرُ فِيهِ الخ چې هر هغه تصرف چې هغې كي هزل ( ټوقه او مزاق) اثر كوي. هغې كي به حجر هم اثر كوي. وَمَا لَا فَلَا او په كوم كي چې هزل (ټوقه) اثر نه كوي. هغې كي به حجر هم اثر نه كوي. لِأَنَّ السَّفِيهَ فِي مَعْنَى الْهَازِلِ ځكه چې سفيه د هازل ( ټوقمار) په معنى كي دې. مِنْ حَيْثُ إِنَّ الْهَازِلَ يُخْرِجُ كَلَامَهُ لَا عَلَى نَهْجِ كَلَامِ الْعُقَلَاءِ لِاتِّبَاعِ الْهَوَى وَمُكَابَرَةِ الْعَقْلِ په دې حيثيت سره چې هازل د عاقلانو د كلام د اسلوب ( او طريقې) په خلاف كلام كوي. د نفس د خواهش تابع دارى او د عقل د مخالفت په وجه، لَا لِنُقْصَانٍ فِي عَقْلِهِ، په عقل كي د څه نقصان په وجه سره نه كوي. فَكَذَلِكَ السَّفِيهُ او هم دغه ډول سفيه دې. وَالْعِتْقُ مِمَّا لَا يُؤَثِّرُ فِيهِ الْهَزْلُ او عتق ( آزادى ) يو داسې شئ دې چه دې كي هزل اثر نه كوي. فَيَصِحُّ مِنْهُ. نو دا به د سفيه د اړخه هم صحيح كيږي.

**تشريح:** په دې باب كي د صاحبينو رحمهما الله په نيز اصول دا دې. چه په كوم تصرف كي هزل او ټوقه اثر كوي. هغې كي حجر هم اثر كوي. او په كوم كي چې هزل اثر نه كوي. هغې كي حجر هم اثر نه كوي. وجه دا ده. چه سفيه هم د هازل په معنى كي دې. په دې حيثيت سره چې د هازل ګفتګو د نفس د خواهش مطابق او د عقل مخالف په داسې طريقه سره وي. چه عقل مند او هوښيار خلګ داسې قسمه كلام نه كوي. خو دا په قصد سره كيږي. په دې وجه نه كيږي. چه عقل كي څه نقصان دې. او هم دا حال د سفيه دې. چه دده كلام هم داسې وي. او په عتق كي هزل اثر نه كوي. نو د سفيه آزادول به صحيح وي.

**سوال:** هر كله چې سفيه د هازل په مرتبه كي دې. نو لكه څنګه چې د هازل آزادولو سره په غلام باندې سعايت نه واجبيږي. نو هم دغه ډول د سفيه آزادولو سره هم واجبيدل پكار نه دى. حالانكه د صاحبينو رحمهما الله په نيز دلته غلام باندې سعايت واجبيږي ؟

**جواب:** د سفيه حجر د فائدې ( او بهترئ) په نظر سره دې. او بهتري د سعايت په وجوب كي ده. په خلاف د هازل، چې هغه محجور نه دې.

وَالْأَصْلُ عِنْدَهُ د امام شافعي رحمه الله په نيز اصل دا دې. أَنَّ الْحَجْرَ بِسَبَبِ السَّفَهِ بِمَنْزِلَةِ الْحَجْرِ بِسَبَبِ الرِّقِّ چې حجر د سفاهت په وجه داسې دې. لكه د رقيت په وجه محجور كيدل، حَتَّى لَا يَنْفُذُ بَعْدَهُ شَيْءٌ مِنْ تَصَرُّفَاتِهِ إِلَّا الطَّلَاقَ تردې چې د حجر نه روسته به دده هيڅ يو تصرف نه نافذ كيږي. سوا د طلاق نه، كَالْمَرْقُوقِ، وَالْإِعْتَاقُ پشان د رقيق ( غلام)، لَا يَصِحُّ مِنَ الرَّقِيقِ او د غلام د اړخه آزادول نه صحيح كيږي. فَكَذَا مِنَ السَّفِيهِ نو هم دغه ډول به د سفيه د اړخه هم نه صحيح كيږي.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله اصول دا دې. چه د سفاهت په وجه محجور كيدل هم داسې دى. لكه د غلامئ په وجه محجور كيدل. تر دې چې د حجر نه روسته دده هيڅ تصرف نه نافذ كيږي. سوا د طلاق نه. لكه څنګه چې د غلام حكم دې. او د غلام آزادول نه صحيح كيږي. نو هم دغه ډول به د سفيه آزادول هم صحيح نه وي.

(وَ إِذَا صَحَّ عِنْدَهُمَا او هر کله چې د صاحبینو رحمهما الله په نیز عتق صحیح شو. (كَانَ عَلَى الْعَبْدِ أَنْ يَسْعَى فِي قِيمَتِهِ) نو په غلام به واجب وی.چه هغه پخپل قیمت کي سعایت (او مزدوري) اوکړي. لِأَنَّ الْحَجْرَ لِمَعْنَى النَّظَرِ ځکه چي محجور کول د نظر (او فائدي کتلو) په وجه وو. وَذَلِكَ فِي رَدِّ الْعِتْقِ إِلَّا أَنَّهُ مُتَعَذِّرٌ او دا خبره د عتق (آزادئ) په رد کاوه کي ده.خو عتق رد کول متعذر دی. فَيَجِبُ رَدُّهُ بِرَدِّ الْقِيمَةِ كَمَا فِي الْحَجْرِ عَلَى الْمَرِيضِ. نو دا به د قیمت د واپس کاوه په ذریعه سره رد کولی شی.لکه ځنګه چي په مریض باندي په حجر کاوه کي کیږي.

تشریح: هرکله چي د صاحبینو رحمهما الله په نیز د سفیه آزادول صحیح شو.نو په غلام به خپل قیمت کي سعایت واجب وی.ځکه چي حجر خو د فائدي په غرض سره وو.او بهتري هم په دې کي ده.چه آزادی رد کړې شی.خو آزادی رد کول متعذر دی.ځکه چي آزادی د فسخ قابل نه ده.نو دا به په دې طریقه رد کولې شی.چه دده قیمت به واپس کولې شی.لکه که قرضدارې بیمار که د مرض په حالت کي غلام آزاد کړی.نو هغه به د قرضدارانو لپاره په پوره قیمت کي سعایت کوی.اوکه د مریض په ذمه پور نه وی.نو غلام به د وارثانو لپاره پخپل دوي (دوه) ثلثه قیمت کي سعایت کوی.

وَعَنْ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رحمه الله نه روایت دې. أَنَّهُ لَا تَجِبُ السِّعَايَةُ چي سعایت واجب نه دې. لِأَنَّهَا لَوْ وَجَبَتْ ځکه که دا واجب وی. إِنَّمَا تَجِبُ حَقًّا لِلْمُعْتِقِ نو د معتق د حق په وجه به واجب وی. وَالسِّعَايَةُ مَا عُهِدَ وُجُوبُهَا فِي الشَّرْعِ إِلَّا لِحَقِّ غَيْرِ الْمُعْتِقِ حالانکه په شریعت کي د سعایت وجوب معهود نه دې.خود غیر معتق د حق په وجه سره.

تشریح: د امام محمد رحمه الله نه د سعایت د عدم وجوب روایت هم دی.(چه دې ته په مبسوط کي د امام ابویوسف رحمه الله آخری قول ونیلی شوی دی.رومبني قول د امام محمد رحمه الله د قول پشان د سعایت د وجوب دې) وجه دا ده.چه دلته سعایت د معتق (آزادونکی) د حق په وجه واجبیږی.حالانکه په شریعت کي ددې وجوب د غیر معتق (قرضدارانو) د حق په وجه معهود (او مطلوب) دې.لکه مثلاً چي یو شریکوال غلام آزاد کړی.نو د دوهم شریکوال د حق په وجه سعایت واجبیږی.

## د سفیه د غلام مدبر کولو حکم

(وَلَوْ دَبَّرَ عَبْدَهُ که سفیه خپل غلام مدبر کړو. (جَازَ) نو جائز دې. لِأَنَّهُ يُوجِبُ حَقَّ الْعِتْقِ ځکه چي دا د عتق (آزادئ) حق واجبوی. فَيُعْتَبَرُ بِحَقِيقَتِهِ إِلَّا أَنَّهُ لَا تَجِبُ السِّعَايَةُ مَا دَامَ الْمَوْلَى حَيًّا نو په حقیقي عتق به قیاس کولې شی.خو سعایت به واجب نه وی.ترکومه پورې چي آقا ژوندې وی. لِأَنَّهُ بَاقٍ عَلَى مِلْكِهِ ځکه چي هغه د آقا په ملك باندي پاته دې.

تشریح: که سفیه خپل غلام مدبر کړو نو دا جائز دی.ځکه چي مدبر کول د حق عتق موجب دی.نو دا به په حقیقي عتق باندي قیاس کولې شی.ځکه چي هرکله دې د عتق د حقیقت د انشاء مالك دې.نو دعتق د حق د انشاء به په طریقهٔ اولی مالك وی.خو په دې صورت کي چي ترکومه پورې آقا ژوندې وی.غلام باندي به سعایت واجب نه وی.ځکه چي هغه تر اوسه پورې دده په ملك باندي پاته دې.نو د سعایت ایجاب ناممکن دې.ځکه چي آقا پخپل غلام باندي مستوجب د دین نه وی.نو که ده غلام د مال په عوض مدبر کړو.او غلام هم قبول کړو.نو مدبر کول صحیح کیږی.او مال نه واجبیږی.ددې په خلاف که مکاتب ئې کړو.یا ئې د مال په عوض آزاد کړو.نو دا صحیح کیږی. ﴿لأنه لم يبق على ملكه حقيقتاً او يداً﴾.

وَإِذَا مَاتَ او هرکله چي هغه مړ شو. وَلَمْ يُؤْنَسْ مِنْهُ الرُّشْدُ او د عقل مندئ آثار دده نه ښکاره نشو. سَعَى فِي قِيمَتِهِ مُدَبَّرًا نو غلام به د مدبر کیدلو په حساب سره خپل قیمت کي سعایت کوی. لِأَنَّهُ عَتَقَ بِمَوْتِهِ وَهُوَ مُدَبَّرٌ ځکه چي هغه د آقا په مرګ باندي آزاد شو په داسې حال کي چي دې مدبر دې. فَصَارَ كَمَا إِذَا أَعْتَقَهُ بَعْدَ التَّدْبِيرِ. نو داسې شوه.لکه چي د مدبر کاوه نه روسته ئې آزاد کړې وی. (وَلَوْ جَاءَتْ جَارِيَتُهُ بِوَلَدٍ که د سفیه د وینځې بچې پیدا



شو. (فَادَّعَاهُ) و سفیه دده د نسب دعوه اوکړله. يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْهُ نو دده به نسب ثابتیږی. وَكَانَ الْوَلَدُ حُرًّا وَالْجَارِيَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ) او بچې به آزاد وی.او وینځه به دده ام ولد وی. لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَى ذَلِكَ لِإِبْقَاءِ نَسْلِهِ ځکه چي هغه د خپل نسل پاته ساتلو لپاره ددې محتاج دې. فَأُلْحِقَ بِالْمُصْلِحِ فِي حَقِّهِ نو د نسل په حق کي به دې د مصلح سره لاحق کولې شی.

تشریح: که مذکوره سفیه په داسې حال کي مړ شو.چه لا تر اوسه پورې د عقل مندئ آثار نه وو ښکاره شوی نو مذکوره غلام به د مدبر کیدلو په حساب سره پخپل قیمت کي سعایت کوی.ځکه چي هغه د آقا په مرګ باندي په داسې حال کي آزاد شو.چه دې مدبر وو.نو داسې شوه.لکه چي هغه د مدبر کاوه نه روسته آزاد کړې وی.

(وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهَا وَلَدٌ او که وینځې سره هیڅ بچې نه وی. وَقَالَ هَذِهِ و سفیه اووائی. أُمُّ وَلَدِي چي دا زما ام ولد ده. كَانَتْ بِمَنْزِلَةِ أُمِّ الْوَلَدِ نو د ام ولد په مرتبه کي به شی. لَا يَقْدِرُ عَلَى بَيْعِهَا، چي هغه به دې لره خرڅولې نشی. وَإِنْ مَاتَ او که مړ شو. سَعَتْ فِي جَمِيعِ قِيمَتِهَا) نو هغه به پخپل پوره قیمت کي سعایت کوی. لِأَنَّهُ كَالْإِقْرَارِ بِالْحُرِّيَّةِ ځکه چي دا اقرار د حریت (او آزادئ) په مرتبه کي دې. إِذْ لَيْسَ لَهُ شَهَادَةُ الْوَلَدِ، ځکه چي وینځې لپاره د بچي شهادت نشته. بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د رومبی صورت، لِأَنَّ الْوَلَدَ شَاهِدٌ لَهَا. چي هغې کي بچې ددې لپاره ګواه دې. وَنَظِيرُهُ الْمَرِيضُ إِذَا ادَّعَى وَلَدَ جَارِيَتِهِ او ددې مثال مریض دې. کله چي هغه د خپلې وینځې د بچي دعوه اوکړی. فَهُوَ عَلَى هَذَا التَّفْصِيلِ چي دا هم په دې تفصیل باندي دې.

تشریح:د ترجمې نه مطلب واضح دې

## د سفیه محجور د نکاح حکم

قَالَ (وَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً که محجور سفیه یوې ښځې سره نکاح اوکړله. (جَازَ نِكَاحُهَا) نو دده نکاح جائز ده. لِأَنَّهُ لَا يُؤَثِّرُ فِيهِ الْهَزْلُ، ځکه چي نکاح کي هزل (ټوقه) اثر نه کوی وَلِأَنَّهُ مِنْ حَوَائِجِهِ الْأَصْلِيَّةِ. او ځکه چي نکاح دده د اصلي ضرورتونو ځنې ده. (وَإِنْ سَمَّى لَهَا مَهْرًا) و که ددې لپاره ئې څه مهر مقرر کړو. (جَازَ مِنْهُ مِقْدَارُ مَهْرِ مِثْلِهَا) نو دهغې د مهر مثل په اندازه به جائز وی. لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ النِّكَاحِ ځکه چي دا د نکاح د ضروریاتو ځنې دې. (وَبَطَلَ الْفَضْلُ) او زیاتی مقدار به باطل وی. لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ فِيهِ ځکه چي ددې هیڅ اړتیا نشته. وَهَذَا الْتِزَامٌ بِالتَّسْمِيَةِ او ده په بیانولو سره پخپله ذمه لازم کړې دې. وَلَا نَظَرَ لَهُ فِيهِ حالانکه په دې کي دده بهتری نشته. فَلَمْ تَصِحَّ الزِّيَادَةُ نو زیاتوالي به صحیح نه وی. وَصَارَ كَالْمَرِيضِ مَرَضَ الْمَوْتِ نو داسې شوه.لکه چي د مرض الموت مریض، (وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او که دې ته ئې طلاق ورکړو.د دخول نه وړاندې، (وَجَبَ لَهَا النِّصْفُ فِي مَالِهِ) نو د ښځې لپاره به د سفیه په مال کي نصف مهر مثل واجب وی. لِأَنَّ التَّسْمِيَةَ صَحِيحَةٌ إِلَى مِقْدَارِ مَهْرِ الْمِثْلِ ځکه چي د مهرمثل مقداره پورې تسمیه صحیح ده.

تشریح: که سفیه محجور یوې ښځې سره نکاح اوکړله.نو زموږ او د امام احمد رحمه الله په نیز دده نکاح جائز ده.د امام مالك، امام شافعی ،او د ابوالخطاب حنبلي رحمهم الله په نیز د ولی د اجازت نه بغیر جائز نه ده.ځکه چي د اخستلو پشان نکاح هم عقد معاوضه ده.نو د ولی د اجازت نه بغیر به جائز نه وی.موږ دا وایو.چه په نکاح کي هزل (ټوقه) اثر نه کوی.نو حجر به هم اثر نه کوی.او په دې وجه هم چي نکاح دده د اصلي ضروریاتو ځنې ده.

(وَكَذَا إِذَا تَزَوَّجَ بِأَرْبَعِ نِسْوَةٍ دغه ډول که څلورو ښځو سره ئې نکاح اوکړله. أَوْ كُلَّ يَوْمٍ وَاحِدَةً) لِمَا بَيَّنَّا او یا ئې هره ورځ یوې ښځې سره نکاح اوکړله.په دلیل مذکور سره. قَالَ (وَتُخْرَجُ الزَّكَاةُ مِنْ مَالِ السَّفِيهِ) و اوښکلې به

شي.زكاة د سفيه د مال نه ... (وَيُنفِقُ عَلَى أَوْلَادِهِ وَزَوْجَتِهِ وَمَنْ تَجِبُ نَفَقَتُهُ مِنْ ذَوِي أَرْحَامِهِ) او خرج كولې به شي.دده په اولاد، دده په ښځه، او په هغه خلګو باندې چې په ده باندې واجب ده.دده د ذوى الارحامو څنې، لِأَنَّ إِحْيَاءَ وَلَدِهِ وَزَوْجَتِهِ مِنْ حَوَائِجِهِ.ځکه چې دده د بچا نفقه ښځې ژوندۍ پاتې كيدل، دده د ضروریاتو څنې دی. وَالْإِنْفَاقُ عَلَى ذِي الرَّحِمِ وَاجِبٌ عَلَيْهِ لِقَرَابَتِهِ،او په ذو رحم باندې خرج كول د قرابت د حق په وجه په ده باندې واجب دې. وَالسَّفَهُ لَا يُبْطِلُ حُقُوقَ النَّاسِ،او سفاهت د خلګو حقوق نه باطلوی. إِلَّا أَنَّ الْقَاضِيَ يَدْفَعُ الزَّكَاةَ إِلَيْهِ خو قاضی به د زكاة په اندازه اخلی. لِيَصْرِفَهَا إِلَى مَصْرِفِهَا او هغه به وركوی چه هغه دا د زكاة په مصارفو كې خرج كړی. لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ نِيَّتِهِ لِكَوْنِهَا عِبَادَةً،ځكه چې دده نيت كيدل ضروری دی.د زكاة د عبادت كيدلو په وجه، لَكِنْ يَبْعَثُ أَمِينًا مَعَهُ كَي لَا يَصْرِفَهُ فِي غَيْرِ وَجْهِهِ.خو د قاضی به هغه ته خپل امين راليګی.چه هغه ئې بې طريقې خرج نكړی. وَفِي النَّفَقَةِ يَدْفَعُ إِلَى أَمِينِهِ لِيَصْرِفَهُ او د نفقې په صورت كې به ئې خپل امانت دار ته وركوی.چه هغه ئې خرج كړی. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِعِبَادَةٍ،ځكه چې نفقه عبادت نه دې. فَلَا يَحْتَاجُ إِلَى نِيَّتِهِ،نو ددې د نيت اړتيا نشته.

**تشريح:** دغه ډول كه سفيه محجور په يو عقد سره څلورو ښځو سره نكاح اوكړله.يا ئې هره ورځ يوې ښځې سره نكاح اوكړله.په دې طريقه چې نن ئې يوې ښځې سره په مهر باندې نكاح اوكړله.او هغې ته طلاق وركړو.په بله ورځ ئې بلې ښځې سره نكاح اوكړله.دغه ډول ئې څو خله اوكړل.بيا هم نكاح جائز ده.او د مهر بيان به د مهر مثل په اندازه صحيح وی.او زياتی مقدار به باطل وی.وجه هم دا ده.چه نكاح دده د ضروریاتو څنې ده.

فائده؟ امام ابوحنيفه رحمه الله ددې مسئلې سره احتجاج كړې دې.چه سفيه باندې حجر كول بې فائدې دی.ځكه چې هغه مال د هلاكاوه نه نشی بندولې.ځكه چې هركله هغه د بيع او هبه په طريقه د مال ضائع كاوه نه عاجز وی.نو هغه به په مهر بيانولو سره روزانه نوې واده كوی.او مال به برباده وی.حالانكه د مال هلا كاوه دا طريقه د بيع او هبې په طريقه د هلاكاوه په نسبت زياته نقصان والا ده.ځكه چې د هبې په طور باندې خرج كاوه سره به لږترلږ ده ته د احسان كاوه نيك نامی حاصليږی.او د مذكوره نكاح كاوه په صورت كې به دې د مذمت (او لعنت) مستحق وی. لقوله ﷺ: لعن الله كل ذواق مطلاق.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ او دا ددې خلاف دی.كله چې سفيه قسم اوخوړلو. أَوْ نَذَرَ يا ئې نذر اوكړو. أَوْ ظَاهَرَ يا ئې ظهار اوكړو. حَيْثُ لَا يَلْزَمُهُ الْمَالُ چې په ده به مال لازم نه وی. بَلْ يُكَفِّرُ يَمِينَهُ وَظِهَارَهُ بِالصَّوْمِ بلكه د قسم او ظهار كفاره به په روژو سره ادا كوی. لِأَنَّهُ مِمَّا يَجِبُ بِفِعْلِهِ ځكه چې دا د هغه څيزونو څنې دی.چه دا دده په فعل سره واجب شوی دی. فَلَوْ فَتَحْنَا هَذَا الْبَابَ نو كه موږ دا دروازه كولاو كړو. يُبَذِّرُ أَمْوَالَهُ بِهَذَا الطَّرِيقِ نو هغه به په دې طريقه خپل مال فضول خرج كوی. وَلَا كَذَلِكَ مَا يَجِبُ ابْتِدَاءً بِغَيْرِ فِعْلِهِ ولا كذلك ما يجب ابتداء بغير فعله او كوم چې دده د فعل نه بغير ابتداء واجب وی.هغه داسې نه دې. قَالَ (فَإِنْ أَرَادَ حَجَّةَ الْإِسْلَامِ) كه سفيه د حج اسلام اراده اوكړله. لَمْ يُمْنَعْ مِنْهَا نو ددې څخه به نشی منع كولې. لِأَنَّهَا وَاجِبَةٌ عَلَيْهِ بِإِيجَابِ اللَّهِ تَعَالَى مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ ځكه چې حج په ده باندې دده د فعل نه بغير په ايجاب د الله ﷻ سره واجب شوې دې. (وَلَا يُسَلِّمُ الْقَاضِي النَّفَقَةَ إِلَيْهِ) خو قاضی به د حج خرچه ده ته نه وركوی. وَيُسَلِّمُهَا إِلَى ثِقَةٍ مِنَ الْحَاجِّ يُنْفِقُهَا عَلَيْهِ فِي طَرِيقِ الْحَجِّ) بلكه يو اعتمادی حاجی ته به ئې وركوی چه هغه ئې د حج په لاره كې په ده باندې خرج كوی كَي لَا يُتْلِفَهَا فِي غَيْرِ هَذَا الْوَجْهِ چې سفيه دا نفقه بې ځايه خرج نكړی.

**تشريح:** يعنی په متن كې چې دا ذكر شوی دی.چه د سفيه محجور د مال څخه به زكاة ادا كولې شي.او دده په بچو باندې، او د كومو خلګو نفقه چې دده په ذمه واجب ده.هغوی باندې به دده د مال نه خرج كولې



شي.دا حكم ددې خلاف دې.كله چې سفيه مذكور قسم اوخوري.او مات ئې كړي.(حانث شي).يا يو نذر اومني.يا خپلې ښځې سره ظهار اوكړي.چه په دې صورتونو كې به په ده باندې مال لازم نه وي.بلكه د قسم او ظهار كفاره به روژو سره ادا كوي.ځكه دا داسې امور دي.چه دا دده په فعل سره واجب شوي دي.اوس كه موږ په مال سره د ادا كاوه دروازه كلاؤ كړو.نو هغه به په دې طريقه خپل مال فضول خرج كوي.ځكه چې دا فعل دده په اختيار كې دي.په خلاف ددې چې دا دده د فعل نه بغير په ابتداء كې واجب وي.چه دا دده په اختيار كې نشته.

## د سفيه لپاره د حج او عمرې حكم

(وَلَوْ أَرَادَ عُمْرَةً وَاحِدَةً) كه سفيه د يوې عمرې قصد اوكړو. (لَمْ يُمْنَعْ مِنْهَا) اسْتِحْسَانًا نو ددې څخه به نشی منع كولې.استحساناً، لِاخْتِلَافِ الْعُلَمَاءِ فِي وُجُوبِهَا،ددې په وجوب كې د عالمانو د اختلاف په وجه. بِخِلَافِ مَا زَادَ عَلَى مَرَّةٍ وَاحِدَةٍ مِنَ الْحَجِّ په خلاف ددې كله چې دا د يوخل حج نه زيات وی. (وَلَا يُمْنَعُ مِنَ الْقِرَانِ) او د حج قران څخه به هم نشی منع كولې. لِأَنَّهُ لَا يُمْنَعُ مِنْ إِفْرَادِ السَّفَرِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځكه چې هركله دې په حج او عمره كې هر يو لپاره يواځې د سفر كاوه نه منع نكړې شو. فَلَا يُمْنَعُ مِنَ الْجَمْعِ بَيْنَهُمَا نو ددې دواړو جمع كاوه څخه به هم نشی منع كولې.

**تشريح:** كه سفيه د يوې عمرې ادا كاوه قصد اوكړو.نو د قياس تقاضه هم دا ده.چه منع كړې شي.ځكه چې عمره زموږ په نيز نفل ده.نو داسې شوه.لكه چې دې د حج فريضه ادا كاوه نه روسته نفلی حج كول غواړي.خو امام شافعی رحمه الله د عمرې د فرضيت قائل دې.نو د عالمانو د اختلاف په وجه به احتياطاً نشی منع كولې.

(وَلَا يُمْنَعُ مِنْ أَنْ يَسُوقَ بَدَنَةً) او دې به د خان سره د بدنې (قربانی) اوړلو نه هم نشی منع كولې. تَحَرُّزًا عَنْ مَوْضِعِ الْخِلَافِ،د خلاف د موضع نه بچكيدلو دپاره، إِذْ عِنْدَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَا يُجْزِئُهُ غَيْرُهَا ځكه چې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما په نيز ددې نه سوا جائز نه ده. وَهِيَ جَزُورٌ أَوْ بَقَرَةٌ(1) او بدنه (قربانی) اوښ يا غوا ده. قَالَ [فَإِنْ مَرِضَ] كه سفيه بيمار شو. وَأَوْصَى بِوَصَايَا فِي الْقُرَبِ وَأَبْوَابِ الْخَيْرِ او ده د قربت او د خير په كارونو كې څه وصيتونه اوكړل. جَازَ ذَلِكَ فِي ثُلُثِهِ نو دا به دده د دريمې برخې (حصې) مال نه جائز وی. لِأَنَّ نَظَرَهُ فِيهِ ځكه چې دده بهتری هم په دې كې ده. إِذْ هِيَ حَالَةُ انْقِطَاعِهِ عَنْ أَمْوَالِهِ ځكه چې اوس د خپل مال نه دده د منقطع كيدو حالت دې. وَالْوَصِيَّةُ تُخَلِّفُ ثَنَاءً أَوْ ثَوَابًا،او وصيت پسې تعريف كيږی.يا ثواب،

**تشريح:** په قارن باندې هدی لازم وی.چه په دې كې زموږ په نيز وزه كافی وی.او بدنه افضل ده.يعنی اوښ يا غوا، او د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په نيز د بدنه نه علاوه نه كافی كيږی.اوس كه سفيه مذكور خپل خان سره بدنه بوتلل اوغواړی.نو د اختلاف نه د بچ كيدو په خاطر به ددې نه نشی منع كولې.

وَقَدْ ذَكَرْنَا مِنَ التَّفْرِيعَاتِ أَكْثَرَ مِنْ هَذَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى او موږ په كفاية المنتهی كې ددې نه زيات تفريعات ذكر كړی دی.

**تشريح:** مثلاً موصوف په كفاية المنتهی كې فرمائيلی دی.چه كوم كس د سفيه كيدو په حالت كې بالغ شو.او هغه هلك چې اوس نا بالغ دې.خو په معامله پوهيږی.

(1) قال الزيلعی رحمه الله غريب وروى الطبرانی رحمه الله فی كتاب المسندالشامين .. سالم بن عبدالله أن ابن عمر(رض) كان يقول: لا أعلم الهدى إلا من الإبل والبقر وكان ابن عبدالله بن عمر(رض) لا ينحر فی الحج إلا الإبل والبقر(نصب الراية:٣٩٣١٤)_

په سفيه او وړوكي بچي كي فرق۞ دا دواړه برابر دي.سوا د څلورو مسئلو نه:① پلار او دده وصي لپاره په وړوكي بچي باندې د تصرف اختيار شته.دده لپاره د مال اخستل خرڅول كولې شي.او سفيه لپاره د حاكم د حكم نه بغير نشي كولې.② د سفيه نكاح كول صحيح ده.او د صبي عاقل صحيح نه ده.③ د سفيه طلاق وركول، او آزادول صحيح دي.او د صبي عاقل نه طلاق وركول صحيح دي.او نه آزادول صحيح دي.④ نا بالغ هلك كه خپل غلام مدبر كړي.نو دده تدبير صحيح نه دي.او كه سفيه مدبر كړي.نو صحيح دي.

## فاسق باندې د حجر كولو حكم

قَالَ ﴿وَلَا يُحْجَرُ عَلَى الْفَاسِقِ﴾ او حجر به نشي كولې.په فاسق باندې، إِذَا كَانَ مُصْلِحًا لِمَالِهِ عِنْدَنَا كله چي هغه مصلح د مال وي.زموږ په نيز، وَالْفِسْقُ الْأَصْلِيُّ وَالطَّارِئُ سَوَاءٌ او فسق اصلي او طاري ( روسته پيدا شوي دواړه ) برابر دي.وَقَالَ الشَّافِعِيُّ :امام شافعي رحمه الله فرمائي.يُحْجَرُ عَلَيْهِ زَجْرًا لَهُ وَعُقُوبَةً عَلَيْهِ كَمَا فِي السَّفِيهِ چي په ده به حجر كولې شي.د زجر او سزا په طور، لكه څنګه چي سفيه كي كولې شي.وَلِهَذَا لَمْ يُجْعَلْ أَهْلًا لِلْوِلَايَةِ وَالشَّهَادَةِ عِنْدَهُ. په دې وجه د امام شافعي رحمه الله په نيز فاسق د ولايت او شهادت اهل نه دې ګرځولې شوې.

**تشريح:** زموږ په نيز به فاسق باندې حجر نشي كولې.كله چي هغه د مال په معامله كي ټيك كار كونكي وي.كه د هغه فسق اصلي وي.چه هم په دې حالت كي بالغ شوې وي.او كه طاري (يعني روسته پيدا شوي) وي.چه د بلوغ نه روسته فاسق شوې وي.د امام شافعي رحمه الله په نيز د سفيه پشان به په فاسق هم د زجر او سزا په طور حجر كولې شي.په دې وجه ددوي په نيز فاسق لائق د ولايت او شهادت نه دې.

وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى زموږ دليل د الله تعالى ارشاد دې: ،، ﴿فَإِنْ آنَسْتُمْ مِنْهُمْ رُشْدًا﴾ كه ته په دوی كي هوښيار توب اوګورې ﴿فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾ الْآيَةَ. نو دوی ته ددوی مال وركړه ،،﴿النساء:٦﴾ وَقَدْ أُونِسَ مِنْهُ نَوْعُ رُشْدٍ او دلته كي يو ډول هوښيار توب ښكاره شوې دې.فَتَتَنَاوَلُهُ النَّكِرَةُ الْمُطْلَقَةُ،نو نكره مطلقه به دې ته ګډ وي.وَلِأَنَّ الْفَاسِقَ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ عِنْدَنَا لِإِسْلَامِهِ او څكه چي فاسق زموږ په نيز د ولايت لائق دې.د خپل اسلام په وجه، فَيَكُونُ وَالِيًا لِلتَّصَرُّفِ نو هغه به د تصرف هم لائق وي.وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِيمَا تَقَدَّمَ او موږ وړاندې دا ثابت كړې دې.

**تشريح:** زموږ دليل مذكوره آيت دې.وجه د استدلال دا ده.چه په دې كي لفظ د ،،رشد ،، نكره واقع شوې ده.چه ددې نه مراد بالاجماع اصلاح في المال دي.اصلاح في الدين مراد نه دې.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دا نقل دی.په شرح طحاوی كي دي.چه امام مالك، امام احمد، او اكثر عالمان رحمهم الله هم ددې قائل د ی.نو د ،، رشد ،، نه مراد صلاح في الدين نشی كيدې.چه نكره مطلقه عامه نشي.څكه چي نكره په موضع د اثبات كي خاص وي.عام نه وي.او په دې وجه هم چي ،،انياس ،، ( يعنی رشد ښكاره كيدل) په،رشد واحد،، باندې معلق دی.كه رشد في الدين مراد وي.نو ،،انياس،، به د دوې (دوه) رشدونو په منځ كي معلق كيږي.

وَيَحْجُرُ الْقَاضِي عِنْدَهُمَا أَيْضًا او حجر به كوی قاضی د صاحبينو رحمهما الله په نيز هم، وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ بِسَبَبِ الْغَفْلَةِ او هم دا قول دې د امام شافعي رحمه الله ، د غفلت په سبب سره.وَهُوَ أَنْ يُغْبَنَ فِي التِّجَارَاتِ او هغه دا دې.چه په تجارت ( او سوداګرئ) كي تاوان اوچتوی.وَلَا يَصْبِرُ عَنْهَا لِسَلَامَةِ قَلْبِهِ او د تجارت نه صبر هم نشي كولې.لِمَا فِي الْحَجْرِ مِنَ النَّظَرِ لَهُ څكه چي په حجر كاوه كي دده بهتري ده.

**تشريح:** زموږ او د امام مالك او امام احمد رحمهما الله په نيز مفضل سړي چي هغه مصلح د مال وي.خو د نفع وركونكو تصرفاتو پوهه ( او هوښيار توب) نه لري.هغه باندې حجر نشته.د صاحبينو رحمهما الله او امام شافعي رحمه الله په نيز د سفيه پشان هغه هم محجور دې.څكه چي دده بهتري هم په دې كي ده.زموږ دليل دا دې.چه نبی كريم ﷺ حضرت حبان بن منقذ رضي الله عنه باندې حجر نه دې فرمائيلې.بلكه صرف دا ئې اوفرمائيل.چه ،،لا خلابة،، ،،دهوكه به نه وی ،، وايه.



# (فَصْلٌ فِي حَدِّ الْبُلُوغِ)

ژباړه: ( دا) فصل د بلوغ د حد ( په بيان كي ) دې.

**تشريح:** د ماشومولی عمر چونكه د حجر په اسبابو كي يو سبب دې.چه د هغې يوه انتهاء ده.نو ددې انتهاء بيانول هم ضروري دی.په دې فصل كي هم دا بيانوی.

## هلك كله بالغ كيږي؟

قَالَ ﴿بُلُوغُ الْغُلَامِ بِالِاحْتِلَامِ وَالْإِحْبَالِ وَالْإِنْزَالِ إِذَا وَطِئَ﴾ د هلك بالغ كيدل احتلام، حامله كول، او انزال سره دی.كله چي دې وطی اوكړی. فَإِنْ لَمْ يُوجَدْ ذَلِكَ كه په دې كي يوه خبره هم او نه موندې شی. فَحَتَّى يَتِمَّ لَهُ ثَمَانِي عَشْرَةَ سَنَةً، نو چي اتلس كاله پوره شی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. وَبُلُوغُ الْجَارِيَةِ بِالْحَيْضِ وَالِاحْتِلَامِ وَالْحَبَلِ، او د انجلی بالغ كيدل حيض، احتلام، او په حمل كيدلو سره دې. فَإِنْ لَمْ يُوجَدْ ذَلِكَ كه يوه خبره هم اونه موندې شی. فَحَتَّى يَتِمَّ لَهَا سَبْعَ عَشْرَةَ سَنَةً) نو كله چي اوولس كاله پوره شی.( نو دوی به بالغ وی ). وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا هم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

**تشريح:** د ماشوم هلك بلوغ په دريو امورو كي يو سره كيږي : ① احتلام يعنی خوب كي صحبت كول، او منی خارجيدل.② احبال يعنی ښځې سره وطی اوكړی.او هغه حامله كړی.③ انزال،په دې دريو واړو كي اصل انزال دې.څكه چي احتلام بغير د انزال نه معتبر نه دې.او ښځه هم د انزال نه بغير نه حامله كيږي.نو انزال اصل اوګرځيدلو.او احبال او احتلام ددې علامتونه شو.

د ماشومې انجلی بلوغ هم په دريو امورو كي يو سره كيږي :① حيض ② احتلام ③ حبل يعنی حامله كيدل.كه په دې كي يوه خبره هم اونه موندې شی.نو بيا به د عمر لحاظ كيږي.يعنی كله چي هلك د اتلسو كالو او انجلی د اوولسو كالو شی.نو د بالغ كيدلو حكم به لګولې شی.دا حكم د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

وَقَالَا:صاحبين رحمهما الله فرمائی.إِذَا تَمَّ الْغُلَامُ وَالْجَارِيَةُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً چي كله د هلك او انجلی لپاره پنځلس كاله پوره شی.فَقَدْ بَلَغَا،(¹)نو دوی بالغ شو.وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ،او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم يو روايت دې.وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ،او دا د امام شافعي رحمه الله قول دې.وَعَنْهُ فِي الْغُلَامِ تِسْعَ عَشْرَةَ سَنَةً. او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت د هلك په اړه كي نورلس كاله دی.

**تشريح:** د بلوغ علامت نه موجود كيدلو په صورت كي د صاحبينو، امام شافعی ، امام احمد او د اصحابو د امام مالك رحمهم الله په نيز د هلك او د انجلی دواړو د بلوغ موده پنځلس كاله ده.دا يو روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دې.او فتوی هم په دې ده.څكه چي اكثر وخته په دومره موده كي علامات د بلوغ ښكاره كيږي.د داوٌد ظاهری رحمه الله په نيز د عمر په لحاظ سره د بلوغ هيڅ حد نشته.څكه د نبی كريم ﷺ ارشاد دې. ،،رفع القلم عن ثلاث عن الصبي حتى يحتلم،، و إثبات البلوغ بغيره يخالف الخبر و هذا قول مالك رحمه الله

فائده۞ د زير ناف ( نامه د لاندې ) ايختو اعتبار شته اوكه نه؟ د امام احمد رحمه الله په نيز دا د بلوغ علامت دې.خو زموږ په نيز ددې هيڅ اعتبار نشته.البته په شرح طحاوی كي د امام ابويوسف رحمه الله نه د اصولو د روايت نه سوا ذكر دی.چه دوی ددې اعتبار كړې دې.پاتی شو د انجلی سينې راوتل.نو په ظاهرالرواية كي به

---

¹) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في الكفاية (٨\٢٠١) وملتقى الأبحر(٤٦١) ورد المحتار (١٠٧\٥) والهندية (٦١\٥) والدرالمنتقى ( ٦٠١\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٢\٢)

په دې سره د بلوغ حكم نشي لګولې.صاحب د كشاف د سورة نور په تفسير كې د حضرت علي ﷛ نه نقل كړي دی.چه هغوی به د قد او قامت اعتبار هم كولو.يعنی د پنځو لېښتو.،، وبه اخذ الفرزدق.،،

~ ما زال مذ عقدت يداه إزاره ﷛ و سمی فادرك خمسة الأشبار

وَقِيلَ او وئيلی شوی دی.الْمُرَادُ أَنْ يَطْعَنَ فِي التَّاسِعِ عَشْرَةَ سَنَةً مراد دا دې.چه په نورلسم كې پيل شی.وَيَتِمُّ لَهُ ثَمَانِي عَشْرَةَ سَنَةً او اتلس پوره شی.فَلَا اخْتِلَافَ.نو هيڅ اختلاف نشته.

**تشريح:** د عمر په لحاظ سره د هلك د بلوغ په اړه كې چې متن كې كوم څه ذكر دی.چه كله دې د اتلسو كالو شی.نو بالغ به وی.دا د امام ابوحنيفه ﷫ نه يو روايت دې. دوهم روايت د نورلسو كالو دې.په دې اړه كې بعضو مشائخو فرمائيلی دی.چه ددې نه مراد دا دې.چه اتلس كاله پوره شی.او په نورلسم كې پيل شی.نو په دې مراد سره دواړو روايتونو كې هيڅ اختلاف نه پاتې كيږی.

وَقِيلَ او وئيلی شوی دی.فِيهِ اخْتِلَافُ الرِّوَايَةِ چې په دې كې اختلاف د روايت دې.لِأَنَّهُ ذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ حَتَّى يَسْتَكْمِلَ تِسْعَ عَشْرَةَ سَنَةً ځكه بعضو نسخو كې ذكر دی.چه نورلس كاله پوره شی.

**تشريح:** او بعضو مشائخو فرمائيلی دی.چه نه بلكه په دې اړه كې د رواياتو اختلاف دې.ځكه چې د مبسوط د بعضو نسخو عبارت ﴿يستكمل تسع عشرة سنة﴾ د روايت په اختلاف باندې دلالت كوی.د حاكم په الكافی كې دی. ﴿لا يجوز طلاق الصبیّ حتی يحتلم أو يبلغ فی ما يكون من وقت الإحتلام و ذالك عند تسع عشرة سنة فإذا بلغ ذالك الوقت و لم يحتلم فهو بمنزلة الرجل﴾،، شيخ ابو الفضل فرمائی.چه دا مسئله په كتاب الوكالة كې د ابوسليمان په روايت سره دوې (دوه) ځايه ذكر شوې ده.يو ځانې كې دی. ﴿بلوغ الغلام أن يكمل له تسع عشرة سنة و بلوغ الجارية أن يكمل لها سبع عشرة سنة﴾ او په بل ځانې كې دی. ﴿أن يطعن فی التاسع عشرة و طعنت الجارية فی السابع عشرة﴾ موصوف فرمائی.چه د امام ابوحنيفه ﷫ په قول كې هم دا مشهوره ده.او په كتاب الوكالة كې د شيخ ابو حفص روايت سره ما قول هم په دې متفق موندلې دې.امام طحاوی ﷫ د شرح آثار په كتاب السير كې ذكر كړی دی. ﴿وكان محمد بن الحسن يذهب فی الغلام إلى قول أبي يوسف وفی الجارية إلى قول أبي حنيفة ﷫﴾

## د بلوغ علامات

أَمَّا الْعَلَامَةُ بهرحال علامت فَلِأَنَّ الْبُلُوغَ بِالْإِنْزَالِ حَقِيقَةً نو ځكه چې په حقيقت كې بالغ كيدل، انزال سره كيږی.وَالْحَبَلُ وَالْإِحْبَالُ لَا يَكُونُ إِلَّا مَعَ الْإِنْزَالِ او حمل كيدل، يا حامله كيدل نه وې.خو په انزال سره وی.وَكَذَا الْحَيْضُ فِي أَوَانِ الْحَبَلِ او هم دغه ډول حيض دې.په زمانې د حمل كې ،،فَجُعِلَ كُلُّ ذَلِكَ عَلَامَةَ الْبُلُوغِ نو دا واړه د بلوغ علامت اوګرځولی شو.

**تشريح:** د ترجمې نه مطلب واضح دې

## د عمر په اعتبار سره د بلوغ موده

وَأَدْنَى الْمُدَّةِ لِذَلِكَ فِي حَقِّ الْغُلَامِ اثْنَتَا عَشْرَةَ سَنَةً،او ددې لپاره كمه موده د هلك په حق كې دولس كاله وَفِي حَقِّ الْجَارِيَةِ تِسْعُ سِنِينَ. او د انجلی په حق كې نهه كاله ده.

**تشريح:** د هلك په حق كې د كم نه كمه موده په كوم كې چې دې بالغ كيدای شی.دولس كاله دی.او د انجلی په حق كې نهه كاله دی.نو كه دوی په دومره موده كې د بلوغ دعوه اوكړی.نو ددوی قول به اوريدې ( او قبلولې) شی.او ددوی احكام به د بالغانو احكام وی.په شرح مجمع كې دی.چه د فقهاؤ په دې باندې اتفاق دې.كه د پنځو كالو يا ددې نه د كم عمر انجلی وينه اوګوری.نو هغه حيض نه دې.او نهه كاله يا ددې نه د زيات عمر انجلی كه وينه اوګوری.نو دا حيض دې.او په شپږ، اووه، او اته كالو كې اختلاف دې.په كافی كې د بعضو حضراتو نه نقل دی.چه كم نه كمه موده يوولس كاله ده.



## د صاحبينو او امام شافعي ﷫ دليل

وَأَمَّا السِّنُّ باتې شو كال، فَلَهُمُ الْعَادَةُ الْفَاشِيَةُ نو ددوی دليل ښكاره عادت دې أَنَّ الْبُلُوغَ لَا يَتَأَخَّرُ فِيهِمَا عَنْ هَذِهِ الْمُدَّةِ. په دې اړه كې چې ددوی دواړو بالغ كيدل، ددې مودې نه نه متاخر كيږی.

**تشريح:** ددې عطف په ،،أما العلامة،، باندې دې.مطلب دا دې.چه د كال په ذريعه پنځلس كاله موده د بلوغ په اړه كې د صاحبينو او د امام شافعي ﷫ دليل ښكاره او غالب عادت دې.چه د هلك او انجلی دواړو بلوغ د پنځلس كالو مودې نه نه روسته كيږی.په صحاح كې د حضرت ابن عمر ﷠ نه روايت دې. ﴿قال عرضت علی النبی ﷺ يوم احد و أنا إبن أربع عشرة فلم يقبلنی و لم يرنی بلغت و عرضت عليه يوم الخندق و أنا إبن خمس عشرة سنة فقبلنی و رأنی بلغت﴾ او د حضرت انس ﷛ نه نقل دی. ﴿قال رسول الله ﷺ: إذا إستكمل المولود خمس عشرة سنة كتب ماله وما عليه و اقيمت عليه الحدود﴾

وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى او د امام ابوحنيفه ﷫ دليل د الله تعالی قول دې ﴿حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ ﴿الإسراء: ٣٤﴾ وَأَشُدُّ الصَّبِيِّ ثَمَانِي عَشْرَةَ سَنَةً،(¹) او اشد ( هوښيارتوب) د ماشوم اتلس كاله دی.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه ﷫ دليل دا آيت دې. ؟﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ په دې كې د اشد(پوخ عقل) نه مراد د بعضو په نيز دوې (دوه) ويشت كاله عمر دې.او د بعضو په نيز درويشت كاله دې.او د بعضو په نيز پنځيشت كاله دې.په قول د علامه مرغينانی ﷫ د حضرت ابن عباس ﷠ نه د اتلس كالو عمر نقل دې.امام ابوحنيفه ﷫ هم دا اخستې دې.ځكه چې دا د ټولو اقوالو نه كم قول دې.البته انجلی چونكه په عامه توګه (عام طور) باندې زر بالغيږی.په دې وجه ددې په حق كې يو كال كم كړې شوې دې.ځكه چې په كال كې دننه څلور واړه موسمونه موجود دی.چه په دې كې به يو نه يو خامخا د مزاج (او طبيعت) موافق وی.

**د صاحبينو ﷫ د دليل جواب** او د ابن عمر ﷠ د حديث ځواب دا دې.چه په دې سره مدعا نه ثابتيږی.ځكه چې د قتال د اجازت حكم د قتال په توان او قدرت باندې منحصر دې.او پنځلس كاله د كوم چې تاسو اجازت وركړې دې.هغه په دې وجه وو.چه هغه دغه وخت د قتال لائق او طاقتور جوړ شوې وو.ددې نه مخكې نه وو. دا ( پنځلس كاله د ددې لپاره نه ووچه مذكوره حكم د بلوغ او عدم بلوغ لپاره دې د حكم روايت كې د سمره بن جندب ﷠ الفاظ ﴿ولو صارعته لصرعته قال : فصارعته فصرعته﴾ هم په دې دلالت كوی.

سوال: د بيهقی او ابن حبان په روايت كې د ﴿لم يخبرنی﴾ نه روسته د ﴿ولم يرنی بلغت﴾ اود ﴿فأجازنی﴾ نه روسته د ﴿ورأنی قد بلغت﴾ اضافه موجود ده او ابن خزيمه د ددې زيادت تصحيح هم كړې ده.

**جواب:** د ﴿رأنی قد بلغت﴾ معنی دا ده.چه ﴿رأنی قد بلغت فی القوة حد القتال﴾ يعنی په پنځلسم كال هغوی زه د قتال د حد په توان كې اوموندلم.پاتې شو حديث د انس ﷛، نو ددې ځواب دا دې.چه دا حديث ثابت نه دې.نو په دې سره حجت نيول ساقط دی.

هَكَذَا قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ حضرت ابن عباس ﷠ هم داسې فرمائيلی دی.وَتَابَعَهُ الْقُتَبِيُّ، او قتبی هم ددوی تابعداری كړې ده.

**تشريح:** خو دا په قول د علامه زيلعی غريب دې.او د اشد( عقلمند) د بلوغ په اړه كې چې كوم روايت د

(¹) غربه الزيلعی ﷫ ثم نقل عنه ﷫ فی قوله تعالی ((حتی اذا بلغ اشده)) نهاية شبابه وإستوائه وهو ما بين ثمانی عشرة سنة إلى أربعين ونقل عنه برواية الطبرانی أنه قال هی ثلاث وثلاثون سنة وهوالذی رفع عيسى ﷺ (نصب الراية: ٤\٣٩٤)_

حضرت ابن عباس ؓ نه نقل دي. ﴿هو ما بين ثماني عشرة سنة إلى ثلاثين﴾ دا هم ثابت نه دي. ځکه چي ابن جرير په خپل تفسير كي دا ضعيف ګرځولي دي او ويلي ئې دي. ﴿روى عن ابن عباس ؓ من وجه غير مرضي﴾ البته حافظ ابن حجر ؒ په درايه كي فرمائيلي دي. چه په تفسير بغوى كي د حضرت ابن عباس ؓ نه بلا اسناد نقل دي. ﴿انه قال هو ما بين ثماني عشرة سنة إلى اربعين﴾ او په ښکاره اګرچه دا هم ضعيف دي. البته د قرآن الفاظو ته نږدې دي. ځکه د الله تعالى ارشاد دي. ﴿حَتّٰى إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً﴾ نو ډيره ممكن ده. چه امام ابوحنيفه ؒ په دې ضعيف روايت باندې ځکه اعتماد كړې وي. چه په دې باب كي ددې نه زيات مضبوط روايت نشته. لكه چي حافظ بيهقي د حضرت انس ؓ نه روايت كړې دې. ﴿اذا إستكمل المولود خمس عشرة سنة كتب ماله و ما عليه و اقيمت عليه الحدود﴾ دا هم ضعيف دې. ﴿قاله الحافظ في التلخيص﴾ بهرحال د ابن عباس ؓ روايت اختيارولو كي احتياط دې. ځکه چي كوم سړې د اتلسو كالو شي. هغه د دواړو روايتونو مطابق بالغ ګرځولې شي. په خلاف ددې چي د پنځلسو كالو وي. هغه صرف د انس ؓ په روايت باندې بالغ ګرځولې كيږي. د ابن عباس ؓ په روايت باندې بالغ نه شمارلې كيږي.

**سوال:** د ,, اشد،، تفسير كوم چې په شل، درې ديرش، يا نهه ديرش سره شوې دې. هغه د اتلسو كالو په نسبت راجح كيدل پكار دي. لكه چي حافظ طبراني په معجم اوسط كي د حضرت ابن عباس ؓ نه روايت كړې دې ﴿في قوله تعالى: ﴿حَتّٰى إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ﴾ قال: ثلاث و ثلاثون سنة و هو الذى رفع عليه عيسى ابن مريم عليهما السلام﴾ او په تفسير ابن مردويه كي د حضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې. ﴿حَتّٰى إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ﴾ ,,قال: تسعاً و ثلاثين سنة،،؟

**جواب:** داسې بالكل نه ده. ځکه چې د حضرت انس او ابن عباس ؓ په منځ كي چي كوم اختلاف ( او نزاع) ده. هغه د اشد د ابتداء په اړه كي ده. او په عشرين وغيره سره چي كوم تفسير شوې دې. هغې كي هغه مصداق ګرځولې شوې دې. د كوم چې حضرت ابن عباس ؓ انكار كوي. ﴿فإنه يقول هو من ثماني عشرة إلى ثلاثين او اربعين﴾

| وَهٰذَا أَقَلُّ مَا قِيلَ فِيهِ او دا د ټولو نه كم دې. چه د اشد ( هوښيار) په اړه كي ويلي شوي دي. |
|---|

**تشريح:** يعني د اشد په معنى كي چي كوم مقدارونه نقل دي. هغه مختلف دي. بعضو شل، بعضو دوې (دوه) ويشت كاله او بعضو پنځيشت كاله، بعضو درې ديرش كاله، بعضو څلويښت كاله، او بعضو دوې (دوه) شپيته كاله ذكر كړي دي. په دې كي د ټولو نه كم مقدار اتلس كاله دې. چه دا د حضرت ابن عباس ؓ قول دې. نو حكم به په وجه د يقين هم په دې مبنى وي. صرف دومره خبره ده. چه د ښځو نشونما ( غټيدل) او بلوغ ډير زر كيږي. نو ددوى په حق كي يو كال كم كړې شو. ځکه چي كال په څلورو موسمونو ( بهار، خزان، ګرمئ او يخنئ) باندې مشتمل وي. چه په دې كي به يو موسم لازمى د مزاج او طبعيت موافق وي.

| فَيُبْتَنَى الْحُكْمُ عَلَيْهِ لِلتَّيَقُّنِ بِهِ نو د حكم مدار د تيقن په وجه هم په دې ايخودې شوې دى. غَيْرَ أَنَّ الْإِنَاثَ نُشُوُّهُنَّ وَإِدْرَاكُهُنَّ أَسْرَعُ صرف دومره خبره ده. چه د ښځو غټيدل، او بالغ كيدل ډير زر كيږي. فَنَقَصْنَا فِي حَقِّهِنَّ سَنَةً لِاشْتِمَالِهَا عَلَى الْفُصُولِ الْأَرْبَعَةِ نو ددوى په حق كي موږ يو كال كم كړو. ددوى په څلور واړو موسمونو باندې د مشتمل كيدلو په وجه. الَّتِي يُوَافِقُ وَاحِدٌ مِنْهَا الْمِزَاجَ لَا مَحَالَةَ چي په دې كي يو خامخا د مزاج موافق وي. |
|---|

**سوال:** په دې باندې يو مضبوط اشكال دې. او هغه دا دې. چه د ماشوم د اشد زمانې ته د رسيدلو په اړه كي يقيني موده هغه ده. كومه چې په ذكر شوو مودو كي د ټولو نه زياته ده. هغه موده نه ده. كومه چې د ټولو نه كمه ده. ځکه چي كوم سړې په دې كي زياتې مودې ته اورسيږي. هغه به كمې مودې ته لازمى رسيدلې وي. خو ددې عكس نشى كيدې. البته د كم وجود فى نفسه د اكثر مودې ته مستلزم نه وي. په خلاف ددې د عكس، خو دلته كي خبره د مودې د فى نفسه وجود په اړه كي نه ده. بلكه ددې مودې د صبى د اشد ( عقلمند) كيدو په اړه كي ده. او په دې اړه كي بغير د شك او شبهٔ نه يقيني موده اكثره ده. كمه موده نه ده.



**جواب:** ددې اشكال ځواب تاج الشريعة او صاحب د كفايه دا وركړې دې چه آيت ﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ كي الله تعالى حكم غايت اشد ( انتهاء د عقل) پورې اوګد كړې دې. او كمه موده كومه چې په دې تفسير كي بيان شوې ده. هغه اتلس كاله ده. چه دا يقيني ده. نو اتلس كاله مودې پورې د حكم ممتد ( اوګديدل) يقيني دى. نو حكم به هم په دې مبنى كولې شى. خو صاحب د نتائج په دې ځواب باندې د اعتراض كاوه نه روسته ويلي دي. حق خبره دا ده. چه په اصل تعليل كي دا اوويلي شي. ﴿وهذا اقل ما قيل فيه فيبنى الحكم عليه للاحتياط﴾ لكه څنګه چې په كافى او تبيين الحقائق كي ويلي دي.

### د بلوغت په اړه كښې د هلك او د انجلۍ د قول حكم

| قَالَ ﴿وَإِذَا رَاهَقَ الْغُلَامُ أَوِ الْجَارِيَةُ الْحُلُمَ﴾ كله چي هلك يا انجلۍ بلوغ ته نږدې شي وَأُشْكِلَ أَمْرُهُ فِي الْبُلُوغِ او بالغ او نا بالغ كيدل مشكل شى. فَقَالَ او اووائى. قَدْ بَلَغْتُ، چې زه بالغ شوم. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو دده قول به معتبر وي. وَأَحْكَامُهُ أَحْكَامُ الْبَالِغِينَ) او دده احكام به د بالغانو په شان وي. لِأَنَّهُ مَعْنًى لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهِمَا ظَاهِرًا ځکه دا داسې خبره ده. چه دا هم ددوى د اړخه معلوميدې شى. فَإِذَا أَخْبَرَا بِهِ نو هركله چې دوى ددې خبر وركړو. |
|---|

**تشريح:** راهق مراهقةً، په معنى د ځوانۍ ته د نږدې كيدلو، يقال رهقه (س) رهقاً، هغه دې ته نږدې شو. ﴿و منه إذا صلى احدكم إلى سترة فليرهقها و يقال صلى الصلاة مراهقاً﴾ ده وخت ته نږدې لمونځ ادا كړو. ﴿حلم بضم حاء بمعنى احتلام﴾

د قول مطلب دا دې. كه هلك يا انجلۍ بلوغ ته نږدې اورسيږي. او د بلوغ په اړه كي ددوى حالت مشتبه شى. يعنى دا نه معلوميږي. چه واقعى دوى بالغ شوى دي. او كه نه دي. او دوى د خپل بالغ كيدو دعوه اوكړي. نو ددوى قول به قبلولې شى. لكه كه ښځه د حيض راتلو خبر وركړي. نو ددې قول قبلولې شى ځکه قاعده كليه ده. چه كوم امر صرف د ښځې د اړخه معلوميدې شى. هغې كي د ښځې ښكاره كول د آيت؟ ﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتّٰى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ په حكم قبلولې شى. نو هم دغه ډول بلوغ ته د نږدې هلك قول به هم قبلولې شى. ځکه بلوغ داسې خبره ده. چه ددې علم هم ددوى د اړخه كيداې شى.

| وَلَمْ يُكَذِّبْهُمَا الظَّاهِرُ او ښكاره حال ددې تكذيب اونكړو. قُبِلَ قَوْلُهُمَا فِيهِ، كَمَا يُقْبَلُ قَوْلُ الْمَرْأَةِ فِي الْحَيْضِ نو ددوى قول به قبلولې شى. لكه څنګه چې دحيض په اړه كي د ښځې قول قبلولې شى. |
|---|

**تشريح:** دا قيد ددې لپاره لګولې شوې دې. كه هلك د دولسو كالو نه كم او انجلۍ د نهو كالو نه د كم عمر وي. او هغوى خپل بالغ كيدل بيان كړي. نو تصديق به نشى كولې. ځکه چي ښكاره حال ددوى تكذيب كوي. په فتاوى قاضى خان او فتاوى ظهيريه كي دي. چه كم عمر په كوم چې د هلك د بالغ كيدلو قول معتبر وي. هغه دولس كاله دې. او د هلك په حق كي نهه كاله دې. ددې نه په كم عمر كي به ددوى قول معتبر نه وي.

## بَابُ الْحَجْرِ بِسَبَبِ الدَّيْنِ)

ژباړه: ( دا) باب د پور په وجه د محجور كاوه ( په بيان كي) دې.

**تشريح:** ددې باب عنوان ئې ﴿باب الحجر بسبب الدين﴾ قائم كړې دې. او تيرشوې باب ئې د ,, باب الحجر للفساد،، په لقب سره ملقب كړې دې. اګرچه د صاحبينو ؒ په قول باندې مبنى دې. لكه څنګه چې د كتاب الصلاة فصل ,,تكبيرات التشريق،، او د علم فرائض باب،، مقاسمة الجد،، عنوان لاندې هم دا ويلي شوى دى. ﴿لأن ابا حنيفة ؒ لا يرى شيئاً منها﴾ بيا د پور په وجه چې كوم حجر كيږي. هغه چونكه د قرضخواهانو په طلب باندې موقوف دې. نو دا په اصل حجر كي مشاركت سره يو زياتى وصف باندې د مشتمل كيدو په وجه د منځكي په لحاظ سره داسې شوى دى. لكه څنګه چې مركب په نسبت د مفرد وي. په دې وجه دا باب د سفيه د حجر نه مؤخر كړې شوې دې.

## د پور په وجه د حجر حکم

(قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي. لَا أَحْجُرُ فِي الدَّيْنِ، چي زه به د پور په وجه حجر نه کوم. وَإِذَا وَجَبَتْ دُيُونٌ عَلَى رَجُلٍ او کله چي په یو کس باندې ډیرې پور واجب شي. وَطَلَبَ غُرَمَاؤُهُ حَبْسَهُ وَالْحَجْرَ عَلَيْهِ او د دده قرضخواه دده قید کول یا محجور کول اوغواړي. لَمْ أَحْجُرْ عَلَيْهِ) نو زه به په ده باندې حجر نه کوم. لِأَنَّ فِي الْحَجْرِ إِهْدَارَ أَهْلِيَّتِهِ ځکه چي حجر کاوه کي دده اهلیت ختمول دي. فَلَا يَجُوزُ لِدَفْعِ ضَرَرٍ خَاصٍّ نو د خاص ضرر دفع کاوه لپاره به جائز نه وي.

**تشریح:** په دې کي کلمه د ،، في ،، سببیه ده. لکه چي وئیلي شي. «يجب القطع في السرقة» امام صاحب رحمه الله فرمائي. چه په غریب قرضدار باندې حجر نشي کیدې. اګرچه قرضخواهان ددې مطالبه اوکړي. ځکه چي په ده باندې حجر کول، ددې اهلیت ختمول بالکلیه ختمول دي. او دده سره د څناورو پشان د سلوك کاوه پشان دي. په دې وجه د خاص ضرر یعني د قرضخواهانو د پور ضرر لرې کاوه په خاطر به داسې نشي کولې. البته قاضي به دې قید کوي. چه دې د پور ادا کاوه په سلسله کي خپل مال خرڅ کړي. ځکه چي قرضدار باندې دین اداکول واجب دي. او ټال مواړه ظلم دې. نو د ظلم لرې کاوه په لحاظ قاضي دې قید کولې شي.

(فَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ بیا که دده مال وي. لَمْ يَتَصَرَّفْ فِيهِ الْحَاكِمُ) نو حاکم به په دې کي هیڅ تصرف نه کوي. لِأَنَّهُ نَوْعُ حَجْرٍ ځکه چي دا هم یو ډول حجر دې. وَلِأَنَّهُ تِجَارَةٌ لَا عَنْ تَرَاضٍ او ځکه چي دا تجارت دې، بغیر د رضامندئ نه. فَيَكُونُ بَاطِلًا بِالنَّصِّ نو دا به په حکم د نص باطل وي. (وَلَكِنْ يَحْبِسُهُ أَبَدًا) خو دې به برابر قید ساتي. حَتَّى يَبِيعَهُ فِي دَيْنِهِ) إِيفَاءً لِحَقِّ الْغُرَمَاءِ تردې چي دې خپل مال پخپله قرضه کي خرڅ کړي. او د قرضخواهانو حق پوره کړي. وَدَفْعًا لِظُلْمِهِ او د قرضدارئ ظلم لرې کاوه دپاره،

**تشریح:** بیا که د مذکوره قرضدار څه مال وي. نو حاکم به هغې کي هیڅ تصرف نه کوي. ځکه چي دا هم یوډول حجر دې. او په دې وجه هم چي دا د رضامندئ نه بغیر تجارت دې. نو په حکم د نص به باطل وي. لکه د الله تعالی ارشاد دې ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ﴾ او تاسو خلګ پخپل منځ کي خپل مالونه په باطله طریقه مه خورئ. مګر دا چي ستاسو په رضامندئ سره تجارت وي،، معلومه شوه. چه د رضامندئ نه بغیر کوم اخستل خرڅول وي. هغه باطل دي. نو هرکله چي قاضي قرضدار باندې دده د رضامندئ نه بغیر دده مال خرڅ کړو. نو په حکم د نص به باطل وي. البته قاضي دې دا قرضدار برابر قید کي اوساتي. تردې چي هغه پخپله خپله قرضه کي دا مال خرڅ کړي. چه د قرضخواهانو حق ادا شي. او د قرضدار ظلم لرې شي.

د غریب قرضدار د قید کاوه حکم ۞ مذکوره غریب قرضدار څومره مودې پورې قید کي ساتل جائز دي؟ په دې کي مختلف اقوال دي. په بعضو کي دوې (دوه) میاشتې، په بعضو کي درې، او په بعضو روایاتو کي د څلورو میاشتو نه شپږ میاشتو پورې قید ساتل نقل دي. خو صحیح دا ده. چه ددې هیڅ حد نشته. بلکه دا د قیدی په حال باندې مبنی ده. ځکه چي بعض خلګ په معمولی تنبیه سره یرېږي. او بعض خلګ داسې زړه ور وي. چه ډیرې مودې پورې جیل کي د ساتلو باوجود صحیح خبره نه بنائي. په دې وجه به د حاکم په رائې باندې محمول وي. هغه چي څومره مودې پورې مناسب اوګنړي. قید کي دې اوساتي. بیا قیدی د شرعي او غیر شرعي هیڅ ارتیا لپاره بهر ته نشي راتلې. البته د بعضو فقهاؤ په نیز د مور پلار، نیکونو، او نیاګانو، او د اولاد جنازې لپاره راوتلې شي. تردې چي فقهاؤ تصریح کړې ده. چه د رمضان میاشت، د اخترونو، جمعې، فرض مونځونو، فرض حج، او د هیڅ چا د جنازې لمونځ لپاره هم بهر ته نشي راتلې. په دې شرط چي خپل ځوك کفیل پیش کړي. فتوی هم په دې قول ده.



(وَقَالَا: صاحبین رحمهما الله فرمائي. إِذَا طَلَبَ غُرَمَاءُ الْمُفْلِسِ الْحَجْرَ عَلَيْهِ چي کله د غریب (قرضدار) قرضخواه په ده باندې حجر طلب کړي. حَجَرَ الْقَاضِي عَلَيْهِ، نو قاضي به په ده باندې حجر کوي.

**تشریح:** صاحبین او آئمه ثلاثه رحمهم الله فرمائي. که قرضخواهان په غریب قرضدار باندې د حجر قائمولو درخواست اوکړي. نو په ده باندې حجر کولې شي. نو قاضي به دې د خرڅولو، او د هرقسمه تصرف او اقرار کاوه نه منع کوي. چه د قرضخواهانو نقصان اونشي. ددې دلیل په وجه چي په سفیه باندې کوم حجر جائز ګرځولې شوې دې. هغه په دده په حق کي د بهترئ په لحاظ کړې شوې دې. او په غریب باندې حجر کاوه کي د قرضخواهانو بهتری ده. ځکه کیداې شي. چه مذکوره غریب قرضدار خپل مال د تلجیه په طور باندې خرڅ کړي. نو د قرضخواهانو حق به ختم شي.

وَمَنَعَهُ مِنَ الْبَيْعِ وَالتَّصَرُّفِ وَالْإِقْرَارِ حَتَّى لَا يَضُرَّ بِالْغُرَمَاءِ)(1) او دې به د بیع او تصرف او اقرار نه منع کوي. چه قرضخواهانو ته ضرر او نه رسیږي. لِأَنَّ الْحَجْرَ عَلَى السَّفِيهِ إِنَّمَا جَوَّزَاهُ نَظَرًا لَهُ، ځکه چي موږ سفیه باندې حجر دده د بهترئ په لحاظ سره جائز کړې دې.

**تشریح:** بیا د صاحبینو رحمهما الله د قول «و منعه من البیع» مطلب دا دې چه د ثمن مثل نه د کم په عوض خرڅولو څخه به ئې منع کوي. که هغه ئې د ثمن مثل په عوض خرڅ کړي نو ددې څخه به ئې نه منع کوي. ځکه چي په دې سره د قرضخواهانو حق نه فوت کیږي. په اختیار، درمختار، تنویر، تصحیح قدوری، بزازیه، جوهره، قاضي خان، ملتقی، او طائي شرح کنز وغیره کي دي. چه په نفس حجر کي او د قرضدار په اسباب او جائیداد خرڅولو کي فتوی د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې ده.

فائده ۞ ،، یلجي،، په تشدید د جیم د ،، الجاء لتجئة،، څخه دې. په معنی د بعضو وارثانو لپاره د خاص کولو، او د فقهاؤ په نیز تلجیه دې ته وائي. چه په یو داسې فعل کاوه باندې مجبور کړي. چه د هغې ښکاره د باطن خلاف وي. دلته کي ددې نه مراد دا دې. چه غریب خپل مال د یو داسې لوې (مرتبې والا) سړي په لاس خرڅ کړي. چي د هغه د قبضې نه راویستل ممکن نه وي.

وَفِي هَذَا الْحَجْرِ نَظَرٌ لِلْغُرَمَاءِ او په دې حجر کي د قرضخواهانو بهتری ده. لِأَنَّهُ عَسَاهُ يُلْجِئُ مَالَهُ ځکه ممکن ده. چه هغه خپل مال په لحاظ د ملجیه خرڅ کړي. فَيَفُوتُ حَقُّهُمْ، او د قرضخواهانو حق فوت شي. وَمَعْنَى قَوْلِهِمَا وَمَنَعَهُ مِنَ الْبَيْعِ أَنْ يَكُونَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَمَنِ الْمِثْلِ، او د صاحبینو رحمهما الله د قول «منعه من البیع» معنی دا ده. چه بیع د ثمن مثل نه د کم په عوض وي. أَمَّا الْبَيْعُ بِثَمَنِ الْمِثْلِ باقي شو د ثمن مثل په عوض خرڅول. لَا يُبْطِلُ حَقَّ الْغُرَمَاءِ وَالْمَنْعُ لِحَقِّهِمْ نو دا د قرضخواهانو حق نه ختموي. او منع کول هم ددوی د حق په وجه دي. فَلَا يُمْنَعُ مِنْهُ نو هغه به ددې نه نشي منع کولې.

**تشریح:** سوال ۞ په دې دا اعتراض کیږي. چه د محجور علیه غریب کیدل ضروری نه دي. بلکه د صاحبینو رحمهما الله په نیز د قرضخواهانو په خاطر توانګر باندې هم حجر کول جائز دي. بلکه د پور په وجه حجر کول خو په صحیح معنی کي د توانګر په حق کي فائنده مند دي. د غریب په حق کي نه وي. نو د مسئلې په وضع کي لفظ د مفلس (غریب) ذکر کول خلل آنداز دي؟

سوال ۞ په نهایه وغیره کي د ذخیره نه نقل دي. چه زموږ بعضو مشائخو وئیلي دي. چه د پور په وجه د حجر کاوه مسئله په قضاء بالافلاس باندې مبنی ده. تردې که قرضدار باندې د افلاس (غریبئ) حکم کیدو نه بغیر په ابتداء کي حجر اوکړې شو. نو دده حجر به بلا خلاف (بالاتفاق) صحیح نه وي. او د صاحبینو رحمهما الله

---

(1) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا فى الخانية (٥٠٣\١٤) والهندية (٥\٥٤) والمبسوط (٤١٧\٢١) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٣\١٢)_

په نيز په حالت د ژوند كي د غريبي تحقق كيداې شي.نو د قاضي د غريبي حكم كول، او په دې باندې مبني كاوه سره حجر كول ممكن دي.او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د ژوند په حالت كي افلاس ( غريبي ) نه متحقق كيږي.نو قاضي لپاره اول د افلاس حكم كول او په دې باندې مبني كاوه سره حجر كول ناممكن دي.او بعضو مشائخو مسئله د حجر بسبب الدين مستقل مسئله گرځولې ده.په مسئلې د قضاء بالافلاس باندې نې مبني نه ده منلې.په دې قول باندې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چې د حجر نه كوم امر مانع دي.هغه د محجور په حق كي د ضرر متعلق كيدو ته متضمن كيدل دي.چه ددې قضاء بالافلاس سره هيڅ تعلق نشته.نو ممكن ده.چه د كتاب د مسئلې په وضع كي مفلس ( غريب) ذكر كول د هغه خلگو قول اختيارولو باندې مبني وي.چا چې د حجر مسئله په قضاء بالافلاس باندې مبني منلې ده؟

**جواب**۞ د صاحب كتاب د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب بيانولو كي دا ونيل چه: «وإن كان له مال لم يتصرف فيه الحاكم» او د صاحبينو رحمهما الله په دليل بيانولو كي دا ونيل چه: «لأنه عساه يلجئ ماله» دغه ډول دا ونيل چه: «وباع ماله إن امتنع المفلس من بيعه» دا واړه په دې دلالت كوي.چه د مسئلې مدار په مذكوره قول اختيارولو باندې نه دي. ( ځكه چې د مال ښكاره كيدو په صورت كي د قضاء بالافلاس تصور نشي كيدې.حالانكه د كتاب په مذكوره اقوالو كي د مال ښكاره كيدلو تصريح موجود ده) بلكه د مسئلې مدار ددې په مستقل كيدو باندې ده.

### د غريب قرضدار د مال خرڅولو حكم

قَالَ **(وَبَاعَ مَالَهُ إِنِ امْتَنَعَ الْمُفْلِسُ مِنْ بَيْعِهِ)** او قاضي دې خرڅ كړي.دده مال كه غريب ددې د بيع نه منع كيږي **وَقَسَمَهُ بَيْنَ غُرَمَائِهِ بِالْحِصَصِ عِنْدَهُمَا)** او دده د قرضخواهانو په منځ كي دې د برخو موافق ويش كړي.د صاحبينو رحمهما الله په نيز **لِأَنَّ الْبَيْعَ مُسْتَحَقٌّ عَلَيْهِ لِإِيفَاءِ دَيْنِهِ** ځكه چې خرڅول په ده واجب دي.د خپلې پور خلاصولو دپاره. **حَتَّى يُحْبَسَ لِأَجْلِهِ** تردې چې هغه ددې په وجه قيد كولې شي. **فَإِذَا امْتَنَعَ نَابَ** نو هركله چې دې منع شو. **الْقَاضِي مَنَابَهُ كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ.** نو قاضي دده قائم مقام شو.لكه څنگه چې مجبوب ( مقطوع الذكر يعني چې ذكرني كټ شوې وي ) او عنين ( نامرد) كي دي.

**تشريح:** كه مفلس د خپل مال خرڅولو نه منع شي.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز به قاضي دا خرڅ كړي.او ثمن دې د قرضخواهانو د برخو مناسب ويش كړي.ځكه چې د پور خلاصولو لپاره مال خرڅول قرضدار باندې واجب دي.تردې چې هغه ددې په وجه قيد كولې شي.نو دده په منع كيدو باندې قاضي دده قائم مقام شو.لكه مجبوب( مقطوع الذكر) او عنين ( هجړا) كه ښځې ته د طلاق ور كاوه نه منع شي.نو قاضي دده قائم مقام جوړيږي.او طلاق وركوي.

**قُلْنَا:** موږ وايو **التَّلْجِئَةُ مَوْهُومَةٌ**، چې تلجيه ( يعني په نقصان د وارثانو يا د قرضخواهانو كي خرڅول) صرف موهوم ده. **وَالْمُسْتَحَقُّ قَضَاءُ الدَّيْنِ**،او واجب پور خلاصول دي. **وَالْبَيْعُ لَيْسَ بِطَرِيقٍ مُتَعَيِّنٍ لِذَلِكَ**، او خرڅول ددې معين طريقه نه ده.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول «لأنه عساه يلجئ ماله» خواب دې.چه دا امر صرف په موهوم درجه كي دې.چه قرضدار خپل مال د تلجيه په طور خرڅ كړي.نو ددې موهوم امر په وجه د يو انسان اهليت نشي ختمولې.او د «لأن البيع مستحق عليه» خواب دا دې.چه د قرضدار په ذمه صرف دومره لازم دي.چه هغه خپله قرضه ادا كړي.او ددې صرف هم دا طريقه متعين نه ده.چه قاضي دده مال خرڅ كړي.بلكه د ادا كاوه نورې طريقې هم شته.مثلاً دا چې دې قيد كړي.نو هم دده په ذريعه خرڅول ممكن دي.دغه ډول دې د چا نه د پور په طور، يا په طريقه دهبې يا په غوښتلو مال حاصلولو سره هم ادا كولې شي.په خلاف د مجبوب( مقطوع الذكر) او عنين (نامرد،هيجړا)، چې كله دوى امساك بالمعروف ( ساتل په ښه طريقه) نشي كولې.نو تسريح



بالاحسان ( پريښول په ښه طريقه) متعين شو.نو په تفريق كي د قاضي د نائب كيدو نه علاوه بله هيڅ طريقه نشته.

**بِخِلَافِ الْجَبِّ وَالْعُنَّةِ** په خلاف د مجبوب( مقطوع الذكر) او عنين، **وَالْحَبْسُ لِقَضَاءِ الدَّيْنِ بِمَا يَخْتَارُهُ مِنَ الطَّرِيقِ**،او د پور په وجه قيد كول ځكه دي.چه د ادا كاوه كومه طريقه چې غواړي. اختيار كړي. **كَيْفَ** او چې څنگه كيداې شي. **وَلَوْ صَحَّ الْبَيْعُ** او كه بيع صحيح وي. **كَانَ الْحَبْسُ إِضْرَارًا بِهِمَا بِتَأْخِيرِ حَقِّ الدَّائِنِ وَتَعْذِيبِ الْمَدْيُونِ** نو قيد كول دواړو ته نقصان رسوي.د قرضخواه د حق تاخيراو قرضدار ته تكليف ور كاوه سره. **فَلَا يَكُونُ مَشْرُوعًا** نو دا به مشروع نه وي.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول «حتى يحبس لاجله» خواب دې.چه د قيد لزوم منو.خو قيد كولې به ددې لپاره نشي.چه مال خرڅ كړي.بلكه ددې لپاره به قيد كولې شي.چه هغه د پور ادا كاوه مذكوره طريقو كي كومه طريقه اوغواړي.اختيار كړي.او كه خرڅول جائز وي.نو د قرضدار قيد كول به د قرضخواه او قرضدار دواړو لپاره مضر وي.ځكه چې د قرضخواه د حق تاخير كيږي.او قرضدار ته به بې فائدې تكليف وي.

### د قرضدارې په سامان او دراهمو سره د پور ادا كولو حكم

قَالَ **(وَإِنْ كَانَ دَيْنُهُ دَرَاهِمَ** كه د قرضدار پور دراهم وي. **وَلَهُ دَرَاهِمُ** او مال هم دراهم وي. **قَضَى الْقَاضِي بِغَيْرِ أَمْرِهِ)** نو ادا دې كړي.قاضي دده د اجازت نه بغير، **وَهَذَا بِالْإِجْمَاعِ**،او دا بالاجماع دي. **لِأَنَّ لِلدَّائِنِ حَقَّ الْأَخْذِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ** ځكه چې قرضخواه ته دده د رضامندئ نه بغير د اخستلو حق دې. **فَلِلْقَاضِي أَنْ يُعِينَهُ** نو قاضي دده كومك كولې شي.

**تشريح:** كه د قرضدار مال او دده پور دراهم يا دنانير وي.نو قاضي دې د قرضدار د امر نه بغير د دراهمو او دنانير نه پور ادا كړي.ځكه مسئله دا ده.كه قرضخواه د خپل قرضدار هم ددې جنس مال باندې قابو ( او قدرت) اومومي.د كوم جنس چې قرضه ده.نو هغه د خپلې پور په اندازه د قرضدار د رضامندئ نه بغير هم اخستې شي.نو هغه ته د اخستلو حق د وړاندې نه حاصل دې.نو قاضي به صرف مددگار وي.لكه مثلاً كه د غائب داسې مال موجود وي.چه هغه دده د اهل او عيال د واجب نفقې د جنس څخې دې.نو قاضي كومك كوي.او ددې مال نه نفقه وركوي.

**(وَإِنْ كَانَ دَيْنُهُ دَرَاهِمَ وَلَهُ دَنَانِيرُ** او كه پور دراهم وي.او مال دنانير يا ددې په عكس وي. **أَوْ عَلَى ضِدِّ ذَلِكَ بَاعَهَا الْقَاضِي فِي دَيْنِهِ)** نو قاضي دې دا خرڅ كړي.دده په دين كي.

**تشريح:** كه د مديون مال دراهم وي.او پور دنانير يا ددې عكس وي.نو دا دې خرڅ كړي.او پور دې ادا كړي.اوكه دده مال سامان او جائيداد وي.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې دا نه خرڅوي.د صاحبينو او ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز دا هم خرڅولې شي.

**وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اسْتِحْسَانٌ.** او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز استحسان دې. **وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَبِيعَهُ كَمَا فِي الْعُرُوضِ**،قياس دا دې.چه نه دې خرڅوي.لكه څنگه چې په سامان كي كيږي. **وَلِهَذَا لَمْ يَكُنْ لِصَاحِبِ الدَّيْنِ** په دې وجه قرضخواه ته دا اختيار نشته. **أَنْ يَأْخُذَهُ جَبْرًا.** چې هغه دا په زبردستئ واخلي. **وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ** وجه د استحسان دا ده. **أَنَّهُمَا مُتَّحِدَانِ فِي الثَّمَنِيَّةِ وَالْمَالِيَّةِ مُخْتَلِفَانِ فِي الصُّورَةِ**، چې دا دواړه په ثمنيت او ماليت كي متحد او په صورت كي مختلف دي. **فَبِالنَّظَرِ إِلَى الِاتِّحَادِ يَثْبُتُ لِلْقَاضِي وِلَايَةُ التَّصَرُّفِ**،نو د اتحاد په لحاظ قاضي لپاره ولايت د تصرف شته. **وَبِالنَّظَرِ إِلَى الِاخْتِلَافِ يُسْلَبُ عَنِ الدَّائِنِ وِلَايَةُ الْأَخْذِ** او د اختلاف په لحاظ سره د قرضخواه نه د اخستلو ولايت مسلوب ( منقطع) دې. **عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ** په دواړو مشابهتونو باندې عمل كاوه سره.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه د نقود خرڅولو جواز د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز استحسان

دي.قیاس دا غواړي.چه قاضي دې دا نه خرڅوي.لکه څنګه چې سامان کې کیږي.په دې وجه قرضخواه ته دا اختیار نشته.چه هغه دا نقود په زبردستۍ واخلي.(لکه څنګه چې ابن آبي لیلی وائي).وجه د استحسان دا ده.چه دراهم او دنانیر دواړه په ثمن او مالیت کیدو کې متحد دی.په دې وجه په باب د زکاة کې یو د بل سره ملاوولې شي.او په صورت کې دواړه مختلف دی.نو په ثمنیت او مالیت کې د اتحاد په لحاظ سره، د قاضي او قرضخواه دواړو لپاره ولایت د تصرف ثابتیږي.او په صورت کې د مختلف کیدو په اعتبار سره دواړو لپاره ولایت د تصرف نه ثابتیږي.دواړو مشابهتونو باندې عمل کاوه لپاره اووئیلي شو.چه د متحد کیدو په لحاظ سره قاضي ته ولایت د تصرف حاصل دې.او د صورت د اختلاف په لحاظ قرضخواه ته د قرضدار د رضامندۍ نه بغیر د اخستلو اختیار نشته او ددې عکس څکه اونکړې شو.چه د قاضي ولایت د قرضخواه په نسبت زیات مضبوط دې او هرکله چې د مختلف کیدو په صورت کې قاضي لپاره ولایت نه ثابتیږي.نو قرضخواه لپاره به په طریقهٔ اولی نه ثابتیږي.نو د دواړو مشابهتونو ابطال لازمیږي. «فلهذا إمتنع العكس»

علامه مرغیناني رحمه الله په «وهذا عند أبي حنيفة رحمه الله» ذکر کاوه سره د امام ابوحنیفه رحمه الله تصریح کړې ده.حالانکه مذکوره حکم اجماعي دې.په دې اړه کې د هدایه ډیر شارحینو دا وئیلي دي.چه امام ابوحنیفه رحمه الله قاضي ته د قرضدارۍ د سامان خرڅولو اجازت نه ورکوي.نو شبه د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې کیږي.چه په نقدینو کې هم اجازت پکار نه دې.څکه چې دا هم یو ډول بیع ده.یعني بیع صرف دې.صاحب د نتائج رحمه الله فرماني.چه مذکوره توجیه هغه وخت مکمل کیداې شي.کله چې د «وهذا عند أبي حنيفة رحمه الله» نه روسته لفظ د،، إستحسانًا،، ذکر نه وی.او کله چې دا لفظ صراحت سره موجود دې.نو مذکوره حکم په حقیقت کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مخصوص شو.په دې وجه د نقدینو بیع په طریقه د استحسان جائز کیدل، او په طریقه د قیاس جائز نه کیدل صرف د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې.د صاحبینو رحمهما الله په نیز د نقدینو بیع قیاساً جائز ده. «فلا إحتياج إلى الإعتذار».

بِخِلَافِ الْعُرُوضِ په خلاف د سامان، لِأَنَّ الْغَرَضَ يَتَعَلَّقُ بِصُوَرِهَا وَأَعْيَانِهَا، چې ددې په ذات او صورت دواړو سره مقصد متعلق وي. أَمَّا النُّقُودُ پاتې شو نقود، فَوَسَائِلُ فَافْتَرَقَا نو هغه صرف وسائل (او ذریعې) دي.

**تشریح:** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د قرضدار د سامان خرڅولو اجازت نشته.د صاحبینو رحمهما الله په نیز قاضي دده اسباب (سامان) هم خرڅولې شي.علامه مرغیناني رحمه الله د بیع نقود او بیع عروض په منځ کې توپیر بیانوي.چه د سامان صورت او ذات دواړو سره غرض متعلق کیږي.نقود یعني دراهم او دنانیر خو صرف د سامان حاصلولو وسیله دی.نو په نقود او سامان کې توپیر ښکاره دې.

(وَيُبَاعُ فِي الدَّيْنِ النُّقُودُ) او په قرضه کې به د ټولو نه وړاندې نقود خرڅولې شي. ثُمَّ الْعُرُوضُ بیا سامان، ثُمَّ الْعَقَارُ بیا جائیداد. يَبْدَأُ بِالْأَيْسَرِ فَالْأَيْسَرِ نو کوم چې د ټولو نه زیات آسان وي.د هغې څخه به پیل کولې شي. لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُسَارَعَةِ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ مَعَ مُرَاعَاةِ جَانِبِ الْمَدْيُونِ څکه چې په دې کې پور ادا کاوه ارخ ته مسارعت (او وړاندې کیدل) دی.د قرضدار د اړخ رعایت ساتلو په لحاظ سره. (وَيُتْرَكُ عَلَيْهِ دَسْتٌ مِنْ ثِيَابِ بَدَنِهِ) او دده د بدن په کپړو کې به یوه کپړه پریښودې شي. وَيُبَاعُ الْبَاقِي) او پاتې به خرڅولې شي. لِأَنَّ بِهِ كِفَايَةً څکه چې دې کې کفایت دې. وَقِيلَ او وئیلي شوي دي. دَسْتَانِ وَهُوَ اخْتِيَارُ شَمْسِ الْأَئِمَّةِ الْحَلْوَانِيِّ، لِأَنَّهُ إِذَا غَسَلَ ثِيَابَهُ لَا بُدَّ لَهُ مِنْ مَلْبَسٍ څکه چې کله دې خپلې کپړې وینځي.نو د اغوستلو لپاره ضرور څه (کپړې) پکار دي.

**تشریح:** چې دوې (دوه) جوړې (به پریښودلې شي).

**تشریح:** دا تفریع د صاحبینو رحمهما الله په قول ده.یعني د صاحبینو رحمهما الله په نیز د قرضدار مال خرڅول جائز دی.نو د قرضدار په قرضه کې به د واړه نه وړاندې نقود خرڅولې شي.کله چې قرضه دراهم وي.او د قرضدار مال هم نقد دراهم وي.بیا به سامان خرڅولې شي.بیا جائیداد.مطلب دا چې کوم د ټولو نه آسان وي.د هغې څخه به



ابتداء کولې شي.بیا به هم دغه ډول درجه په درجه خرڅولې شي.څکه چې دې کې پور ادا کاوه اړخ ته مسارعت (او مخکې کیدل) دی.او د قرضدار د اړخ رعایت هم دې.او د قرضدار د اغوستلو په کپړو کې به یوه کپړه پریښودې شي.او پاتې به خرڅولې شي.څکه چې د اغوستلو لپاره یوه جوړه کافي ده.او په قول د بعضو مشائخو به دوې (دوه) جوړې پریښودې شي.څکه چې کله دې کپړې وینځي.نو د اغوستلو لپاره د بلې کپړې موجود کیدل ضروري دي.

## د حجر په حالت کښې د قرضدارۍ د اقرار حکم

قَالَ (فَإِنْ أَقَرَّ فِي حَالِ الْحَجْرِ بِإِقْرَارٍ) که قرضدار په حالت د حجر کې څه اقرار اوکړو. لَزِمَهُ ذَلِكَ بَعْدَ قَضَاءِ الدُّيُونِ) نو دا به په ده لازم وي.د قرضونو د ادا کاوه نه پس. لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهَذَا الْمَالِ حَقُّ الْأَوَّلِينَ څکه چې دده د مال سره د مخکنو حق متعلق شوې دې. فَلَا يَتَمَكَّنُ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّهِمْ بِالْإِقْرَارِ لِغَيْرِهِمْ، نو دې د هغوی نه علاوه لپاره به اقرار کاوه سره د هغوی حق نشي باطلولې.

**تشریح:** بیا که مذکوره قرضدار د حجر په حالت کې څه اقرار اوکړو.نو دا اقرار به بالفعل لازم نه وي.بلکه د قرضونو ادا کاوه نه روسته به لازم وي.په شرح اقطع کې دی.چه دا د صاحبینو رحمهما الله په قول دې.څکه چې دې موجوده مال سره مخکې د قرضخواهانو حق متعلق شوې دې.نو هغه ددوی نه د علاوه لپاره اقرار کاوه سره ددوی حق نشي باطلولې.د امام شافعي رحمه الله په نیز که مدیون د داسې دین اقرار اوکړو.کوم چې دده په ذمه د حجر نه وړاندې لازم شوې وو.نو اقرار به صحیح وي.او په اصح قول کې دی.چه په ده به لازم وي.او یو قول دا هم دې.چه لازم به نه وي.د امام مالك او امام احمد رحمهما الله قول هم دا دې.

بِخِلَافِ الْاِسْتِهْلَاكِ په خلاف د هلاکولو، لِأَنَّهُ مُشَاهَدٌ څکه چې دا په سترګو سره مشاهده ده. لَا مَرَدَّ لَهُ چې ددې هیڅ دفع کول نشي کیدې. (وَلَوِ اسْتَفَادَ مَالًا آخَرَ بَعْدَ الْحَجْرِ) او که ده د حجر نه روسته نور څه مال حاصل کړو. نَفَذَ إِقْرَارُهُ فِيهِ) نو په دې کې به دده اقرار نافذ کیږي. لِأَنَّ حَقَّهُمْ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ لِعَدَمِهِ وَقْتَ الْحَجْرِ څکه چې دې مال سره ددوی حق نه دې متعلق شوې.د حجر په وخت ددې مال د نه موجود کیدو په وجه.

**تشریح:** مخکنې قول د «لزمه ذالك بعد قضاء الديون» سره متعلق دې.مطلب دا دې.که قرضدار په حالت د حجر کې د چا مال هلاك کړو.نو ددې تاوان به في الحال لازم وي.او دچا مال نې چې هلاك کړې دې.هغه به نورو قرضخواهانو سره شریك وي.څکه چې هلاکول مشاهد، محسوس او په سترګو سره کتلې شوې خبرې ده.چه ددې هیڅ دفعیه نشي کیدې. «لأن الحجر لا يصح في الفعل الحسي»

## د غریب محجور قرضدار د کور د خلقو د نفقې حکم

قَالَ (وَيُنْفَقُ عَلَى الْمُفْلِسِ مِنْ مَالِهِ) و خرچ کولې به شي غریب باندې دده د مال نه، وَعَلَى زَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ الصِّغَارِ وَذَوِي أَرْحَامِهِ مِمَّنْ يَجِبُ نَفَقَتُهُ عَلَيْهِ) او دده په ښځه، په وړو ماشومانو، او دده په ذوی الارحامو باندې، د کومو نفقه چې په ده باندې واجب ده. لِأَنَّ حَاجَتَهُ الْأَصْلِيَّةَ مُقَدَّمَةٌ عَلَى حَقِّ الْغُرَمَاءِ، څکه چې دده اصلي اړتیا د قرضخواهانو په حق باندې مقدم دې. وَلِأَنَّهُ حَقٌّ ثَابِتٌ لِغَيْرِهِ او څکه چې دا حق ثابت دې.د غیر دپاره. فَلَا يُبْطِلُهُ الْحَجْرُ نو حجر به دا نه باطلوی. وَلِهَذَا لَوْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً په دې وجه که ده د یوې ښځې سره نکاح اوکړله. كَانَتْ فِي مِقْدَارِ مَهْرِ مِثْلِهَا أُسْوَةً لِلْغُرَمَاءِ. نو هغه به د خپل مهر مثل په مقدار کې د نورو قرضخواهانو سره برابره شریکه وي.

**تشریح:** د مفلس (غریب) نه مراد هم دا محجور قرضدار دې.یعني ددې مفلس، او دده د ښځې او دده د وړو بچو او د ذوی الارحامو نفقه به هم دده د مال نه ورکولې شي.څکه چې دده اصلي اړتیا د قرضخواهانو په حق باندې مقدم دې.او په دې وجه هم چې د نفقې حق د نورو لپاره ثابت دې.نو حجر دا نشي باطلولې.او په دې وجه چې دده حالت اصلیه د قرضخواهانو په حق باندې مقدم دې.که ده د یوې ښځې سره نکاح

اوکړله.نو هغه به د خپل مهرمثل مقداره پوري قرضخواهانو سره يوشان شريکه وي.

قَالَ (فَإِنْ لَمْ يُعْرَفْ لِلْمُفْلِسِ مَالٌ) يا كه د غريب هيڅ مال نه معلوميدو. وَطَلَبَ غُرَمَاؤُهُ او قرضخواه دده قيد کول طلب کړي. حَبْسَهُ وَهُوَ يَقُولُ لَا مَالَ لِي حَبَسَهُ الْحَاكِمُ فِي كُلِّ دَيْنٍ او هغه هم دا وائي.چه زما سره مال نشته.نو حاكم به دي قيد كوي. الْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ كَالْمَهْرِ وَالْكَفَالَةِ) په هر داسې ورخ کي چې دهغې ئې التزام کړې وي.ده د عقد په ذريعه. لكه مهر او كفالت.

تشريح: كه د مفلس هيڅ مال ښكاره نشو.او قرضخواه خلګ دده د قيد كاوه درخواست اوکړی.حالانكه قرضدار هم دا وائي.چه زما سره هيڅ مال نشته.نو حاكم به دې په هر داسې قرضه كې قيد كوي.دكوم چې ده د عقد په ذريعه خپل ځان باندې التزام کړې وی.لكه مهر او كفالت وغيره.

تنبيه@ په دې مقام باندې د مختصرالقدوري او د بدايه د متن اصلی عبارت داسې وو. ﴿و إن لم يعرف للمفلس مال و طلب غرماؤه حبسه و هو يقول لا مال لى حبسه الحاكم فى كل دين لزمه بدلاً عن مال حصل فى يده كثمن المبيع و بدل القرض و فى كل دين إلتزمه بعقد كالمهر و الكفالة...﴾ خو په هدايه كې ددې مسئلې نقل كاوه په وخت د علامه مرغيناني رحمه الله نه خط كشيده عبارت د څه عارض د سهو او هيرې وغيره په وجه پاتې شو.

وَقَدْ ذَكَرْنَا هٰذَا الْفَصْلَ بِوُجُوهِهِ فِي كِتَابِ أَدَبِ الْقَاضِي مِنْ هٰذَا الْكِتَابِ او مونږ دا فصل ددې د وجوهو سره په، ، كتاب ادب القاضى ، ، كې ذكر كړې دې. فَلَا نُعِيدُهَا نو ددې اعاده نه كوو. إِلَى أَنْ قَالَ: ددې قول پورې وَكَذٰلِكَ إِنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ چې هم دغه ډول كه ده ګواهي قائم كړله. أَنَّهُ لَا مَالَ لَهُ: چې دده سره هيڅ مال نشته. يَعْنِي خَلّٰى سَبِيلَهُ لِوُجُوبِ النَّظِرَةِ إِلَى الْمَيْسَرَةِ.يعنى دده لاره آزاده كړي.د آسانئ ( مالدارئ) وختـه پورې.د مهلت د وجوب په وجه.

تشريح: دا لفظ د مخكنى قول ﴿فإن لم يعرف للمفلس مال....﴾ كې مال سره متعلق دې.يعنى امام قدروى رحمه الله په مختصركې اوفرمائيل. ﴿و إن لم يعرف للمفلس مال..إلى أن قال....و كذالك إن أقام البينة أنه لا مـال لـه...﴾ او عبارت يعنى ،،خلى سبيله،، د علامه مرغيناني رحمه الله دارخه دې.چه ددې مقصد د ﴿و كذالك إن أقام البينة أنه لا مال له﴾ د مراد تفسير دې.او ﴿لوجوب النظر إلى الميسرة﴾ ددې تعليل دې.نو علامه مرغيناني رحمه الله دلته خپل او د قدورى كلام ملاؤ كړې دې.چه دا د ،خفګان موجب شو.غوره داسې وه.چه ﴿إلى ان قال...ئې د....و قد ذكرنا هذا الفصل﴾ نه وړاندې ذكر كړې وو.يا لفظ د ﴿إلى ان قـال﴾ ئې بالكل پريښودې وو.او داسې ئې وئيلى وې. ﴿قـال وكذالك إن اقام البينة﴾ لكه څنګه چې په نورو عامو ځايونو كې د موصوف هم دا عادت دې.بهرحال د قول مطلب دا دې.كه مذكوره مفلس بينه قائم كړل.نو دې به پريښودې شی.څكه چې د آسانئ ( او فراخئ ) وختـه پورې مهلت وركول، په حكم د نص ؟﴿وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ﴾ واجب دى.

فائده@ د قيد كاوه نه روسته غريبئ باندې بينه قائمول، بالاتفاق مقبول دى.پاتې شوه دا كه مذكور مفلس د قيد كيدو نه وړاندې پخپلې غريبئ باندې بينه قائم كړل.نو دا به هم قبلولې شی او كه نه؟ نو په دې اړه كې دوې ،دوه، روايتونه دى.① يو دا چې قبلولې به شی.شيخ ابو بكر محمد بن الفضل به ددې فتوى وركوله.② دوهم دا چې د قيد كيدو نه وړاندې به بينه نه قبليږي.عام مشائخ په دې روايت دی.او شمس الائمه سرخسى په شرح ادب القاضى كې هم دې اړخ ته تلې دې.اوهم دا صحيح ده.

وَلَوْ مَرِضَ فِي الْحَبْسِ اوكه دې په قيد خانه كې بيمار شو. يَبْقٰى فِيهِ نو دې به هم هلته كې پريښودې شی. إِنْ كَانَ لَهُ خَادِمٌ يَقُومُ بِمُعَالَجَتِهِ،كه دده څوك خادم وی چه هغه دده د علاج پالنه كولې شی. وَإِنْ لَمْ يَكُنْ او كه نه وی. أَخْرَجَهُ تَحَرُّزًا عَنْ هَلَاكِهِ نو هغه دې راوباسی.دده د هلاكت نه د بچ كيدو دپاره.

تشريح: كه مذكوره مفلس په قيد خانه كې بيمار شو.نو هم هلته كې به پريښودې شی.په دې شرط چې دده څوك خادم وی.چه هغه دده علاج معالجه او نګرانی اوكړې شی.او كه څوك داسې خادم نه وی.نو د



قيد خانې به راويستلې شی.چه هغه مړ نشی.څكه چې صرف د پور په وجه هلاكول جائز نه دی.ايا نه ګورې.كه د مخمصه ( يعنى د سختې لوګې) په وجه د هلاكت خطره وی.نو دا د مال په ذريعه لرې كولې شی.نو بيا د غير د مال په خاطر هلاكول كله جائز كيداې شی.البته د امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دې.چه په دې صورت كې به هم د جيل خانې نه نشی راويستلې.څكه كه هلاكت واقع شو.نو دا به د مرض په وجه وی. ﴿و إنه فى الحبس و غيره سواء﴾.

وَالْمُحْتَرِفُ فِيهِ لَا يُمَكَّنُ مِنَ الِاشْتِغَالِ بِعَمَلِهِ او پيشه ور ( كاروبارى ) ته به پخپل كار كې د مشغوليدو قابو نشی وركولې. هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده. لِيَضْجَرَ قَلْبُهُ چې دده زړه تنګ شی. فَيَنْبَعِثَ عَلٰى قَضَاءِ دَيْنِهِ، او په زر تر زره په پور ادا كاوه باندې راضى شی.

تشريح: كه مذكوره مفلس څوك پيشه ور ( كاروبارى ) سړې وی.نو ده له به په كار كاوه قابو ( او قدرت) نشی وركولې.ددې لپاره چې زړه ئې تنګ شی.او زر تر زره به پور ادا كاوه باندې راضى شی.په قول د امام خصاف رحمه الله زياته صحيح هم دا ده.او علامه مرغيناني رحمه الله په،، هـو الصـحيح،، وئيلو سره زمونږ د بعضو مشائخو د قول نه احتراز كړې دې.چه د حرفت او اكتساب څخه به نشی منع كولې.د امام شافعى رحمه الله اصح قول هم دا دې.څكه چې دې كې د دواړو طرفونو رعايت دې.د قرضدار رعايت دا دې.چه هغه به په مزدورئ سره د خپل اهل وعيال نفقه حاصله كړي.اود قرضخواه رعايت دا دې.چه دده د مزدورئ نه كومه زياتى شی.هغه به په پور ادا كاوه كې خرچ كوی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ لَهُ جَارِيَةٌ په خلاف ددې كله چې د قرضدار څوك وينځه وی. وَفِيهِ مَوْضِعٌ يُمْكِنُهُ فِيهِ وَطْؤُهَا او په قيد خانه كې يو داسې ځائې وی.چرته چې دې وطى كولې شی. لَا يُمْنَعُ عَنْهُ نو ددې څخه به نشی منع كولې. لِأَنَّهُ قَضَاءُ إِحْدَى الشَّهْوَتَيْنِ څكه چې دا په شهوتونو كې يو پوره كول دی. فَيُعْتَبَرُ بِقَضَاءِ الْأُخْرٰى نو دا به په نورو شهوتونو باندې قياس كولې شی.

تشريح: كه د قرضدار څوك وينځه وی.او په قيد خانه كې څه داسې ځائې وی.چه هلته كې دې وطى كولې شی.نو د وطى څخه به نشی منع كولې.څكه چې په شهوتونو كې لكه څنګه د بدن شهوت پوره كاوه يعنى د خوراك نه نشی منع كولې.دغه ډول به د فرج ( شرمګاه) شهوت پوره كاوه نه هم نشی منع كولې.

**د قيد نه د وتلو نه روسته د قرضخواهانو معامله او د هغې حكم**

قَالَ (وَلَا يَحُولُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُرَمَائِهِ بَعْدَ خُرُوجِهِ مِنَ الْحَبْسِ او نه به حائل كيږی.قاضى د قرضدار او قرضخواهانو په منځ كې .دده د قيد خانې نه د وتلو نه پس. يُلَازِمُونَهُ وَلَا يَمْنَعُونَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ وَالسَّفَرِ) بلكه هغوى دې په ده پسې اولګی.خو د تصرف او سفر نه دې نه منع كوی. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ د نبى كريم ﷺ د ارشاد په وجه.چه، { لِصَاحِبِ الْحَقِّ يَدٌ وَلِسَانٌ }(١) حقدار لپاره لاس او ژبه ده،، د لاس نه مراد وريسې نښليدل دی. أَرَادَ بِالْيَدِ الْمُلَازَمَةَ وَبِاللِّسَانِ التَّقَاضِي.او د ژبې نه مراد تقاضه ( مطالبه) كول دی. قَالَ (وَيَأْخُذُونَ فَضْلَ كَسْبِهِ او دده زياتى مزدورى دې اخلی. يُقْسَمُ بَيْنَهُمْ بِالْحِصَصِ) او پخپل منځ كې دې د حصو مطابق تقسيموی. لِاسْتِوَاءِ حُقُوقِهِمْ فِي الْقُوَّةِ(٢) په قوت كې ددوی ټولو د حقوقو برابر كيدو په وجه.

تشريح: كله چې مفلس ته د قيدخانې نه آزادی ملاؤ شی.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به حاكم دده او د

(١) عن مكحول رضي الله عنه أخرجه الدراقطنى فى سننه (٢٣٢\٤)_

(٢) القول الراجح هو قول أبى حنيفة رحمه الله كما ظهر من دأب المنصف رحمه الله :ما وجدت ها الإختلاف بعد تتبع سوا البحر والزيلعى ولكن لم يرجحا أحد القولين كذا قاله المفتى غلام قادر مدظله العالى انظر القول الراجح (٢\٢ ٥٣)

قرضخوانانو په منځ کي نه حائل کيږي. البته قرضخواه خلګ به په ده پسې هر وخت لګيدلي وي. ځکه چې دار قطني په سنن کي او ابن عدی په الکامل کي د نبی کريم ﷺ ارشاد روايت کړی دی. «ان لصاحب الحق اليد و اللسان» او په صحيحينو کي د حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دی. «قال: أتى النبي ﷺ رجل يتقاضاه فأغلظ له فهم به أصحابه فقال: دعوه فإن لصاحب الحق مقالا» په رومبی حديث کي د ،،يد،، او ،،لسان،، نه مراد په لاس سره وهل نه دی بلکه وريسې لګيدل، او تقاضه کول مراد دی. د قدوری په بعضو نسخو کي ،،ولا يلازمه،، د لانې نافيه سره دی. دا غلط دی.

تنبيه۞ صاحب د عنايه او صاحب د کفايه د مذکوره حديث نه د استدلال نيولو وجه بيان کړي ده. فرمايي چه دا حديث د هغه زمانې په حق کي مطلق دی. کومه چې د قيد خانې نه د آزادۍ نه روسته ده. او کومه چې ددی نه وړاندې ده. خو دا وجه محل نظر (او قابل د اشکال) ده. ځکه چې د حديث زمانې سره هيڅ تعرض نشته. او نه دا په دې اړه کي مطلق دی. بلکه ددې نه ساکت دی. په دې موقع په عامه توګه (عام طور) باندې دا غلط فهمی کيږی. چه د ساکت عن الشئ او مطلق په منځ کي توپير نه کيږی. لکه څنګه چې اهل حديثو د الله تعالی د قول ﴿فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ نه په قريه (کلو) او صحراګانو کي د جمعې په وجوب باندې استدلال کړی دی. او ونيلی ئې دی. چه د مکان (ځائې) په اړه کي آيت مطلق دی. حالانکه دا غلطه ده. ځکه چې آيت مطلق نه دی. بلکه د مکان په حق کي ساکت دی. بهرحال د استدلال نيولو صحيح وجه دا ده. چه د لاس او ژبې مقصد دده حقدار کيدل دی. او دا علت په دواړو حالتونو کي مشترك موجود دی. يعنی د قيد نه وړاندې هم، او ددې نه روسته هم، نو حکم به هم مشترك وی.

فائده۞ امام ابوداؤد او بيهقی حديث،، هرماس بن حبيب عن أبيه عن جده،، روايت کړي دی. «قال: أتيت النبي ﷺ بغريم لي فقال لي ،،الزمه ثم قال لي يا أخا بني تميم ما تريد أن تفعل بأسيرك؟،،» په يو روايت کي دا هم دی. «فقال: ما فعل أسيرك يا بني العنبر؟» دا حديث په دې اړه کي صريح دی. چه قرضخواه لپاره خپل قرضدار سره د لګيدو حق شته دی.

(وَقَالَا: صاحبين ﷺ فرمائی. إِذَا فَلَّسَهُ الْحَاكِمُ چې کله حاکم ده لره مفلس اوګرځولو. حَالَ بَيْنَ الْغُرَمَاءِ وَبَيْنَهُ نو حائل دې شی. دده او دده د قرضخواهانو په منځ کي.

تشريح: صاحبين ﷺ فرمائی. چې کله حاکم ده لره مفلس اوګرځولو. نو اوس دې هغه دده او د قرضخواهانو په منځ کي حائل شی. او هروخت دې تقاضه کاوه ته نه پريږدی. البته که قرضخواه په دې خبره بينه قائم کړی. چه دده په ملك کي څه مال شته. وجه دا ده. چه د قاضی د چا په حق کي د افلاس فيصله کول، د صاحبينو ﷺ په نيز صحيح دی. نو د مفلس تنګلاسی (غريبی) او فقيری ثابته شوه. او هغه مالدارۍ پورې د مهلت ور کاوه مستحق شو. ائمه ثلاثه ﷺ هم ددې قائل دی. او د امام ابوحنيفه ﷺ په نيز قضاء بالافلاس نه صحيح کيږی. ځکه چې مال خو داسې شئ دی. چه کله راځی. او کله ځی. نن شته. صباله نشته. صباله به دی. بله ورځ به نه وی. ولنعم ما قال حاتم ~

أما وي أن المال غاد و رائح ۞ و يبقى من المال الأحاديث و الذكر

او په دې وجه هم چې په مال نه کيدو باندې د ګواهانو خبريدل نشی متحقق کيدې. ځکه چې دوی ته د مال په حقيقت باندې علم نشی کيدې. هغوی خو صرف په ښکاره طور باندې ددې معلومات ورکولې شی. چه دده مال نشته. په دې ګواهۍ سره صرف دفعيه کيدای شی. د قرضخواهانو په ده پسې د لګيدو حق نشی باطل کيدی.

إِلَّا أَنْ يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ أَنَّ لَهُ مَالًا) مګر دا چې هغه بينه قائم کړی. چه دده په ملکيت کي هيڅ مال نشته. لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِالْإِفْلَاسِ عِنْدَهُمَا يَصِحُّ ځکه چې ددوی په نيز د افلاس (غريبی) حکم لګول صحيح کيږی. فَتَثْبُتُ الْعُسْرَةُ نو تنګلاسی (غريبی) به ثابتيږی. وَيَسْتَحِقُّ النَّظِرَةَ إِلَى الْمَيْسَرَةِ او د آسانۍ (مالدارۍ) وختـه پورې بـه د مهلت



مستحق وی. وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَتَحَقَّقُ الْقَضَاءُ بِالْإِفْلَاسِ، او د امام ابوحنيفه ﷺ په نيز د افلاس حکم نه متحقق کيږی. لِأَنَّ مَالَ اللَّهِ تَعَالَى غَادٍ وَرَائِحٌ، ځکه چې د الله تعالی مال په سهار کي راځی. او مابنام ځی. وَلِأَنَّ وُقُوفَ الشُّهُودِ عَلَى عَدَمِ الْمَالِ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا ظَاهِرًا او ځکه چې په مال نه کيدو باندې د ګواهانو خبريدل نشی متحقق کيدې. خو صرف ښکاره طور باندې. فَيَصْلُحُ لِلدَّفْعِ لَا لِإِبْطَالِ حَقِّ الْمُلَازَمَةِ. نو دا صرف د دفع کاوه لائق دی. د وريسې لګيدلو حق باطلولو لپاره (لائق) نه دی. وَقَوْلُهُ إِلَّا أَنْ يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ بَيِّنَةَ الْيَسَارِ تَتَرَجَّحُ عَلَى بَيِّنَةِ الْإِعْسَارِ او «إلا أن يقيموا البينة» دې خبرې اړخ ته اشاره ده. چه د مالدارۍ بينه به راجح وی. د غريبۍ په بينه باندې. لِأَنَّهَا أَكْثَرُ إِثْبَاتًا، ځکه چې بينه د مالدارۍ زيات ثابتونکی دی. إِذِ الْأَصْلُ هُوَ الْعُسْرَةُ. ځکه چې اصل خو تنګلاسی (غريبی) ده. وَقَوْلُهُ فِي الْمُلَازَمَةِ او د وريسې لګيدلو لاندې دا ونيل. لَا يَمْنَعُونَهُ مِنَ التَّصَرُّفِ وَالسَّفَرِ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّهُ يَدُورُ مَعَهُ أَيْنَمَا دَارَ چې دی به د تصرف او سفر نه نه منع کوی. ددې خبرې دليل دی. چه قرضخواه به دده سره سره ګرځی. چرته چې هم دی ځی. وَلَا يُجْلِسُهُ فِي مَوْضِعٍ دی په يو خاص مجلس کي نشی کينولې. لِأَنَّهُ حَبْسٌ ځکه چې دا به يو خانې کي قيد کول شی.

تشريح: يعنی ابو الحسين قدوری ﷺ چې کوم قول د صاحبينو ﷺ لاندې فرمائيلې دی. «إلا أن يقيموا البينة...» په دې کي دې خبرې اړخ ته اشاره ده. چه د غريب په ګواهۍ باندې به د مالدارۍ ګواهانو ته ترجيح ورکولې شی. ځکه چې تنګلاسی (غريبی) اصل ده. او د غريبۍ ګواهانو هم دا اصل ثابت کړې دی. او د مالدارۍ ګواهانو ددې نه زيات يعنی مالداره کيدل ثابت کړی دی.

## د غريب قرضدار کور ته د قرضخواهانو د داخليدو حکم

(وَلَوْ دَخَلَ دَارَهُ لِحَاجَتِهِ که غريب قرضدار د څه اړتيا لپاره خپل کور ته داخل شو. لَا يَتْبَعُهُ نو قرضخواه دې په ده پسې نه ځی. بَلْ يَجْلِسُ عَلَى بَابِ دَارِهِ إِلَى أَنْ يَخْرُجَ) بلکه د کور په دروازه کي دې کينی. ترڅو چې هغه بهر ته راووځی. لِأَنَّ الْإِنْسَانَ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ لَهُ مَوْضِعُ خَلْوَةٍ، ځکه چې سړی لپاره ضروری دی. چه دده لپاره د خلوت يو خانې هم وی. وَلَوِ اخْتَارَ الْمَطْلُوبُ الْحَبْسَ وَالطَّالِبُ الْمُلَازَمَةَ او که قرضدار خپل خان قيد کول او قرضخواه په دې پسې ننښليدل اختيار کړل. فَالْخِيَارُ إِلَى الطَّالِبِ نو اختيار به قرضخواه ته وی. لِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي حُصُولِ الْمَقْصُودِ لِاخْتِيَارِهِ الْأَضْيَقَ عَلَيْهِ، ځکه چې دده په مقصد حاصلولو کي دا زيات مضبوط دی. په قرضدار باندې د زياتې تنګۍ معاملې اختيارولو په وجه. إِلَّا إِذَا عَلِمَ الْقَاضِي خو کله چې قاضی ته معلومه شی. أَنْ يَدْخُلَ عَلَيْهِ بِالْمُلَازَمَةِ ضَرَرٌ بَيِّنٌ چې ور سره لګيدو کي د قرضدار ښکاره ضرر دی. بِأَنْ لَا يُمَكِّنَهُ مِنْ دُخُولِهِ دَارَهُ په دې طريقه چې هغه ده لره کور ته نه پريږدی. فَحِينَئِذٍ يَحْبِسُهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ نو په دې صورت کي دې هغه قيد خانه کي اوساتی. دده نه د ضرر لرې کاوه دپاره. (وَلَوْ كَانَ الدَّيْنُ لِلرَّجُلِ عَلَى الْمَرْأَةِ و که د سړی پور په ښځه باندې وی. لَا يُلَازِمُهَا) نو هغې سره دې نه لګی. لِمَا فِيهَا مِنَ الْخَلْوَةِ بِالْأَجْنَبِيَّةِ ځکه چې دې کي اجنبی (پردۍ ښځې) سره خلوت لازميږی. وَلَكِنْ يَبْعَثُ امْرَأَةً أَمِينَةً تُلَازِمُهَا البته څوك امانتداره ښځه دې اوليګی. چه په دې پسې اولګی.

تشريح: د ترجمې نه مطلب ښکاره دی

## غريب قرضدار سره د قرضخواه د عين سامان موجود کيدو حکم

قَالَ فرمائی. (وَمَنْ أَفْلَسَ څوك چې مفلس شو. وَعِنْدَهُ مَتَاعٌ لِرَجُلٍ بِعَيْنِهِ ابْتَاعَهُ مِنْهُ و هغه سره د يو کس سامان بعينه موجود دی. کوم چې ده د هغه نه اخستې وو. فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ أُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ فِيهِ) نو د سامان مالك په دې (سامان) کي د نورو قرضخواهانو برابر دی.

تشريح: يو سړی مفلس اوګرځولې شو. او دده سره د يو کس څه شئ بعينه موجود دی. کوم چې ده د هغه نه

اخستي وو.نو زموږ په نیز به دغه سړي د نورو قرضخواهانو سره برابر شریك وي.په دې شرط چې افلاس د قبضې نه روسته وي.امام زهری ،عمربن عبدالعزیز، قاضی شریح، ابن جنید ، ابراهیم نخعی ،او ابن شبرمه ؒ هم ددې قائل دی.او محمد بن سیرین ؒ به هم ددې فتوه ورکوله.

| وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ:امام شافعی ؒ فرمائی.يَحْجُرُ الْقَاضِي عَلَى الْمُشْتَرِي بِطَلَبِهِ. چې قاضی دې مشتری باندې حجر اوکړی.د بائع په طلب باندې، ثُمَّ لِلْبَائِعِ خِيَارُ الْفَسْخِ بیا به بائع ته د فسخ اختیار وی. |
|---|

**تشریح:** امام شافعی ؒ فرمائی.چه دغه سړې د خپل شئ حقدار دې.نو د بائع په درخواست به قاضی دا مشتری محجور کوی.اوس بائع عقد فسخ کولې شی.او خپل شئ واپس اخستلې شی.امام مالك، امام احمد، اوزاعی ،اسحاق، ابوثور، او ابن المنذر ؒ هم ددې قائل دی.او دا د حضرت عثمان، حضرت علی ،او د حضرت ابوهریرهؓ نه هم نقل دی.د حضرت سمرة بن جندبؓ حدیث دې. ﴿من وجد متاعه عند مفلس بعینه فهو أحق به﴾ (احمد) خو ددې په سند کې ابراهیم راوی په قول د ابوحاتم نا قابل احتجاج دې.

**سوال:** ابوداؤد طیاسی په،، عن أبي ذئب حدثني أبو المعتمر عن عمر بن خالد،، روایت کړې دې. ﴿قال أتينا أباهريرةؓ في صاحب لنا يعني أفلس فأصاب رجل متاعه بعينه قال أبوهريرةؓ هذا الذي قضى فيه رسول اللهﷺ أن من أفلس أو مات فأدرك رجل متاعه بعينه فهو أحق به إلا أن يدع الرجل و فاء﴾؟

**جواب:** شیخ عبدالحق په الاحکام کې د امام ابوداؤد ؒ قول ذکر کړې دې. ﴿من يأخذ بهذا أبو المعتمر من هو؟ أي لا يعرف﴾ امام طحاوی ؒ فرمائی. ﴿لا نعرف من هو ولا سمعنا له ذكرا إلا في هذا الحديث﴾ په الاشراف کې دی. ﴿الحديث مجهول الاسناد﴾.

| لِأَنَّهُ عَجَزَ الْمُشْتَرِي عَنْ إِيفَاءِ الثَّمَنِ خکه چې مشتری د ثمن ادا کاوه نه عاجز شو. فَيُوجِبُ ذٰلِكَ حَقَّ الْفَسْخِ كَعَجْزِ الْبَائِعِ عَنْ تَسْلِيمِ الْمَبِيعِ نو ده د فسخ حق واجب کړو.لکه د بائع د مبیع سپارلو نه عاجز کیدل، وَهٰذَا لِأَنَّهُ عَقْدُ مُعَاوَضَةٍ، وَمِنْ قَضِيَّتِهِ الْمُسَاوَاةُ او دا خکه چې دا عقد معاوضه ده.چه ددې د مقتضیاتو څنې مساوات دې.وَصَارَ كَالسَّلَمِ. او دا د سلم پشان شو. |
|---|

**تشریح:** دا د امام شافعی ؒ قیاسی دلیل دې.چه مشتری د ثمن ادا کاوه نه عاجز شو.نو په دې جهت سره بائع ته د فسخ حق حاصل شو.لکه بائع که د مبیع سپارلو نه عاجز شی.نو حق د فسخ حاصلیږی.او وجه ددې دا ده.چه بیع یو عقد معاوضه ده.ددې تقاضه دا ده.چه د دواړو طرفونو نه مساوات وی.نو کله څنګه چې د بائع د عجز په صورت کې مشتری ته د فسخ حق وی.دغه ډول د مشتری د عجز په صورت کې به بائع ته هم د فسخ حق وی.نو دا داسې شوه.لکه په عقد سلم کې که مسلم فیه په بازار کې منقطع ( ختم) شی.نو رب السلم ته د فسخ اختیار وی.

| وَلَنَا زموږ دلیل دا دې أَنَّ الْإِفْلَاسَ يُوجِبُ الْعَجْزَ عَنْ تَسْلِيمِ الْعَيْنِ چې افلاس ( غریبی ) د عین د سپارلو نه عاجز کیدل واجبوی.وَهُوَ غَيْرُ مُسْتَحَقٍّ بِالْعَقْدِ حالانکه دا په عقد سره واجب نه دې.فَلَا يَثْبُتُ حَقُّ الْفَسْخِ بِاعْتِبَارِهِ نو په دې اعتبار سره به حق د فسخ نه ثابتیږی.وَإِنَّمَا الْمُسْتَحَقُّ وَصْفٌ فِي الذِّمَّةِ:واجب خو یو وصف دې.په ذمه کې .أَعْنِي الدَّيْنَ،وَبِقَبْضِ الْعَيْنِ تَتَحَقَّقُ بَيْنَهُمَا مُبَادَلَةٌ،یعنی په قرضه او عین مال باندې قبضه کاوه سره په دوی دواړو کې مبادله متحقق کیږی.هٰذَا هُوَ الْحَقِيقَةُ هم دا حقیقت دې.فَيَجِبُ اعْتِبَارُهَا،إِلَّا فِي مَوْضِعِ التَّعَذُّرِ كَالسَّلَمِ نو ددې اعتبار به ضروری وی.خو په داسې ځائې کې چرته مشکل وی.لکه سلم. لِأَنَّ الْاِسْتِبْدَالَ مُمْتَنِعٌ خکه چې هلته بدلول منع دی فَأُعْطِيَ لِلْعَيْنِ حُكْمُ الدَّيْنِ،وَاللّٰهُ أَعْلَمُ نو عین ته د دین ( قرض) حکم ورکړې شو.والله اعلم |
|---|

**تشریح:** زموږ دلیل دا دې.چه افلاس ددې امر موجب دې.چه هغه د عین سپارلو نه عاجز وی.حالانکه دلته کې هیڅ مال عین د عقد په ذریعه نه دې واجب شوې.نو د افلاس په لحاظ سره به بائع ته د فسخ حق نه وی.او د عقد په وجه صرف د داسې شئ استحقاق دې.چه هغه د مشتری په ذمه وصف دې.یعنی قرضه، او



هغه نقد ثمن دې.او کله چې بائع په مال عین باندې قبضه اوکړله.نو د بائع او مشتری په منځ کې به حکمی مبادله متحقق شی.او حقیقی معنی نه ده.نو ددې اعتبار ضروری دې.سوا دهغه موقع نه، چرته چې دا مبادله محال ( ناممکن) وی.لکه څنګه چې عقد سلم کې کیږی.خکه چې هلته کې استبدال ممتنع دې. ﴿لقولهﷺ : لا تأخذ إلا سلمك أو رأس مالك﴾نو مال عین ته د دین حکم ورکړې شو. ﴿تحرزا عن الإستبدال﴾.

د دلیل لنډیز دا ده.چه کوم امر د عقد په ذریعه مستحق دې.هغه داسې وصف دې.چه ثابت فی الذمه دې.او د پوره ادا کول واجب دی.چه دا د وصف په ذریعه سره نشی کیدې.په دې وجه شارع عین شئ ددې بدل اوګرځولو.نو هرکله چې ده په بدله کې عین شئ باندې قبضه اوکړله.نو په دوی دواړو کښې مبادله متحقق شوه.مطلب دا چې دوی کې هر یو کس لپاره د بل په ذمه یو وصف ثابت شو.او د دین ادا کاوه په سلسله کې ثبوت د مبادلې حقیقت دې.نو ددې اعتبار به ضروری وی.

زموږ نقلی دلیل په سنن دار قطنی کې د ابوهریرهؓ حدیث دې. ﴿أيما رجل باع سلعة فادركها عند رجل قد أفلس فهو ماله بين غرمائه﴾ دا حدیث اګرچه مرسل دې.خو مرسل حدیث زموږ په نیز حجت دې.هسې امام خصاف او امام رازی ؒ دې ته مسند هم وئیلی دی.او ددې راوی ابن عیاش، امام احمد ؒ ثقه منلې دې بیا صاحب د عین ( مصنف ؒ) فرمائی.چه ښکاره ددې معنی دا ده.چه دا نې د بیع په طور ورکړې وو.او لا تراوسه پورې بیع تام شوې نه وه.د حدیث الفاظ ﴿فادركها عند رجل قد أفلس﴾ کې هم دې اړخ ته اشاره موجود ده.خکه چې دا نې ذکرنکړل.چه دا نې مشتری سره اوموندلو.کوم چې مفلس شوې دې.

## كِتَابُ الْمَأْذُونِ

ژباړه: ( دا) کتاب د ماذون ( د احکامو په بیان کې) دې.

**تشریح:** کتاب الماذون نې د کتاب الحجر نه روسته خکه ذکرکړې دې.چه اذن مخکې حجر غواړی.یعنی اذن ددې تقاضه کوی.چه د کوم تصرف نه مخکې منع کړې شوې وو.اوس د هغې اجازت ورکړې شو.

### د،، إذن،، لغوی تحقیق

| اَلْإِذْنُ: اَلْإِعْلَامُ لُغَةً،اذن په لغت کې په معنی د خبرولو دې.وَفِي الشَّرْعِ: فَكُّ الْحَجْرِ وَإِسْقَاطُ الْحَقِّ عِنْدَنَا او په شرع کې حجر لرې کول او حق ساقطول دی.زموږ په نیز. |
|---|

**تشریح:** علامه مرغینانی ؒ فرمائی.چه اذن په لغت کې په معنی د اعلام ( خبرولو) دې.یعنی اطلاع کول، او وئیل.د فقه په اکثرو کتابونو کې هم دا ذکر دی.خو صاحب د نتائج ؒ فرمائی.چه د لغت په مروجه کتابونو کې چرته هم دا ذکر نه دی.چه اذن په لغت کې په معنی د اعلام ( او خبرداری) دې.بلکه په دې کې اذان په معنی د اعلام راغلې دې.نو د فقهاؤ تفسیر په تسامح باندې مبنی دې.ګویا لفظ د اذن چې د،، إذن (س) له في الشيء،، څنې دې.په معنی د اجازت ورکولو.او مباح کولو.لکه څنګه چې په قاموس وغیره کې تصریح ده.ددې معنی تعبیر دوی په اعلام سره کوی.په دې معنی چې اباحت لپاره په عامه توګه (عام طور) باندې اعلام لازم دې.د صاحب د نهایه ؒ په کلام کې دې اړخ ته اشاره هم شته. ﴿حيث قال: ههنا يحتاج إلى بيان الإذن لغة شرعا ثم قال أما اللغة فالإذن في الشيء رفع المانع لمن هو محجور عنه و إعلام بإطلاقه فيما حجر عنه من أذن له في الشيء إذنا﴾

بیا علامه زیلعی ؒ په تبیین کې فرمائیلی دی.چه ﴿و الإذن في اللغة الإعلام و منه الأذان و هو الإعلام بدخول الوقت﴾ دغه ډول صاحب د بدائع فرمائیلی دی. ﴿لأن الإذن هو الإعلام قال الله تعالى ؟ ﴿وَأَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ﴾ أي أعلام﴾ دا معنی بیخی لرې ده.خکه چې ددې مدار د اذن او آذان په اتحاد باندې دې.حالانکه داسې نه ده.نو د اذن لغوی معنی په اړه کې قیاس ته نژدې دا ده.کومه چې شیخ الاسلام خواهرزاده په مبسوط کې ذکر کړې ده.چه اذن په لغت کې ضد د حجر دې.د حجر معنی منع کول او بندول دی.او د اذن معنی دا منع او بندول پورته کول دی.

د اذن اصطلاحي تعريف۞ په اصطلاح د شرع کي اذن ،،فك حجر،، او،، اسقاط حق،، ته واني. يعني بچي د کم عمرئ په وجه او غلام د غلامئ په وجه د څه تصرف نه منع کړي شوي وو. هغوی ته د تصرف اجازت ورکول. د،، فـك حجر،، نه اطلاق د حجر مطلقاً مراد نه دي. بلکه صرف د تجارت د امورو اطلاق مراد دي. ځکه چي عبد ماذون لپاره تبرع او اعتاق او د تکفير بالمال ( د مال په ذريعه د کفارې اداکولو) اجازت نه وي. په اسقاط د حق کي د حق نه مراد حق د آقا دي. ددي مطلب دا دي چه کله آقا خپل غلام ته د تجارت اجازت ورکړو. نو دده د کوم حق په وجه چي غلام د تصرف نه منع کړي شوي وو. هغه په اجازت ور کاوه سره دا حق ساقط کړو په هدايه، عنايه، او کفايه وغيره تولو کي هم دا ذکر دی. صاحب د تنوير او صاحب د اصلاح او ايضاح ونيلي دي چه د حق نه مراد حق د منع دي. صرف د آقا حق مراد نه دي. ځکه چي په دي صورت کي به اذن صرف غلام ته ګډ وي. صغير ( ماشوم) ته نه شامليږي. حالانکه اذن غلام او صغير دواړو ته ګډ دي. خو آفندی په تکمله کي په يو څو وجوهو سره د دي ترديد کړي دي.

### غلام لپاره د اذن حکم

وَالْعَبْدُ بَعْدَ ذٰلِكَ يَتَصَرَّفُ لِنَفْسِهِ بِأَهْلِيَّتِهِ،او غلام ددي اجازت نه روسته خپل ځان لپاره پخپل اهليت سره تصرف کوی. لِأَنَّهُ بَعْدَ الرِّقِّ بَقِيَ أَهْلًا لِلتَّصَرُّفِ بِلِسَانِهِ النَّاطِقِ وَعَقْلِهِ الْمُمَيِّزِ ځکه چي هغه د رقيت( غلامئ) نه روسته د تصرف اهل پاته پاتي شو. خپلې ناطقي ژبې او مميز( هوښيار) عقل سره، وَانْحِجَارُهُ عَنِ التَّصَرُّفِ لِحَقِّ الْمَوْلٰى،او د تصرف نه دده محجور کيدل د اقا د حق په وجه وو. لِأَنَّهُ مَا عُهِدَ تَصَرُّفُهُ إِلَّا مُوجِبًا تَعَلُّقَ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ وَبِكَسْبِهِ،ځکه چي د غلام تصرف معهود نه دي. خو دده سټ يا مزدورئ سره، د دين متعلق کيدلو په وجه، وَذٰلِكَ مَالُ الْمَوْلٰى حالانکه دا د آقا مال دي. فَلَا بُدَّ مِنْ إِذْنِهِ نو د آقا اجازت ضروری دي. كَيْ لَا يَبْطُلَ حَقُّهُ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ، چي دده د رضا نه بغير دده حق باطل نشي.

تشريح: د آقا اړخه د حق د اسقاط نه روسته غلام د خپل ځان دپاره، پخپل تير شوی لياقت سره تصرف کوی. ګويا د تصرف کوم لياقت چي ددي نه وړاندي حاصل وو. هغه اوس ښکاره شو. نو دده تصرف به د خپل ځان لپاره وی. دده د آقا لپاره به نه وی. په طريقه د توکيل او نيابت، وجه دا ده. چه غلام د رقيت ( غلامئ) نه روسته د تصرفاتو اهل ( حقدار) پاته پاتي کيږی. ځکه چي رکن د تصرف خو دده کلام دي. چه دا شرعاً معتبر دي. ځکه چي دا (کلام) په ناطق ژبه او مميز ( هوښيار) عقل سره صادر شوي دي. او محل د تصرف داسي ذمه ده. چه دا د حق د التزام قابل دي. او دا دواړه شيان په رقيت سره نه فوت کيږی. ځکه چي د ذمي قابل د التزام کيدل، د بشری کراماتو څخه دي. او د رقيت په وجه غلام د بشر کيدو نه نه خارجيږی. صرف دومره خبره ده. چه دده د تصرف نه محجور کيدل، د آقا د حق په وجه وو. ځکه چي د غلام تصرف په دي طريقه معهود دي. چه دا دده د سټ يا مزدورئ سره د دين متعلق کيدو موجب وی. حالانکه دده سټ او مزدوری د آقا مال دي. نو د آقا اجازت ضروری دي. چه د رضامندئ نه بغير د هغه حق باطل نشی. او هرکله چي آقا اجازت ورکړو. نو هغه د خپل حق په ساقطولو پخپله راضی شو.

سوال۞ عبد ماذون د تصرف په حکم يعني د ملك په لحاظ سره په ده کي اهليت نشته. نو ده لره د نفس تصرف اهل کيدل پکار نه دی. ځکه چي شرعی تصرفات ددوی د احکامو په وجه مقصود وی. او غلام د تصرف اهل نه دي. نو ددي د سبب به هم اهل نه وی ؟

جواب۞ د تصرفاتو حکم ملك يد دي. او رقيق ( غلام) ددي اهل دي. هم دا وجه ده. چي د رقيت باوجود مکاتب ته د ملك يد استحقاق وی.

### په مولا د ماذون د ذمه داريانو لاحق کولو حکم

وَلِهٰذَا لَا يَرْجِعُ بِمَا لَحِقَهُ مِنَ الْعُهْدَةِ عَلَى الْمَوْلٰى،په دي وجه کومي ذمه داريانې چي په ده باندي لاحق وی. هغه په آقا باندي نه لازميږی. وَلِهٰذَا لَا يَقْبَلُ التَّأْقِيتَ، حَتّٰى لَوْ أَذِنَ لِعَبْدِهِ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا او په دي وجه اجازت توقيت ( خاص وخت)



نه قبلوی. تردي که غلام ته ني د يوې ورځي اجازت ورکړو. كَانَ مَأْذُونًا أَبَدًا حَتّٰى يَحْجُرَ عَلَيْهِ، نو هغه به هميشه لپاره ماذون وی. تردي چي ده لره محجور کړی.

تشريح: دا د تيرشوی قول ﴿و العبد بعد ذالك يتصرف لنفسه باهليته﴾ اړخ ته راجع دي. يعني د اجازت نه روسته چونکه غلام پخپل لياقت ( او قابليت) سره تصرف کوی. په دي وجه چي کومه ذمه داری په ده لاحق شی. هغه په آقا باندي نه لازميږی. يعني آقا ددي نه ضامن کيږی. او ځکه چي اجازت زموږ په نيز اسقاط د حق دي. اجازت يو خاص وخته پورې نه محدود کيږی. تردي که غلام ته ني د يو ورځي لپاره د تجارت اجازت ورکړو. نو هغه به هميشه لپاره ماذون وی. تردي چي آقا ده لره محجور کړی. وجه دا ده. چه اسقاطات يو خاص وخت سره نه موقت کيږی.

سوال۞ که مذکوره اذن اسقاط وی. نو د اسقاط نه روسته آقا لپاره دحجر ولايت پکار نه دي. ځکه چي هغه خپل ولايت ساقط کړو. او کوم شئ چي ساقط شی. هغه دوباره نه واپس کيږی. حالانکه آقا ددي نه روسته هم حجر کولي شی ؟

جواب۞ ولايت د حجر د رقيت د بقاء په اعتبار سره دي. نو د اجازت نه روسته بيا په حجر کاوه کي ددي حق د اسقاط نه منع کول دی. کوم چي ده ته د مستقبل په لحاظ سره حاصل دي. په دي اعتبار سره نه چي ساقط حق را واپس شو.

سوال۞ حجر لرې کول، او اسقاط د حق په تعريف کي ذکر دي. ﴿حيث قال: و فى الشرع فك الحجر و إسقاط الحق﴾ بيا په دي باندي استدلال څنګه صحيح شو؟

جواب۞ مذکوره استدلال په نفس تعريف باندي نه دي. تردي چي دا اعتراض وارد شی. چه تعريف استدلال نه قبلوی. ځکه چي تعريف د تصوراتو د قبيلي څخه دي. او د تصور اکتساب په تصديق سره نه کيږی. بلکه استدلال په ضمنی حکم باندي دي. ﴿كان يقال هذا التعريف صحيح هذا التعريف مطابق لأصولنا﴾ او ښکاره ده. چه دا احکام تصديقات دی. چه په دي باندي استدلال کولي شی.

لِأَنَّ الْإِسْقَاطَاتِ لَا تَتَوَقَّتُ ځکه چي اسقاطات موقت نشی کيدي. ثُمَّ الْإِذْنُ كَمَا يَثْبُتُ بِالصَّرِيحِ يَثْبُتُ بِالدَّلَالَةِ،بيا اجازت لکه څنګه چي صريح سره ثابتيږی. دغه ډول دلالت سره هم ثابتيږی. كَمَا إِذَا رَأَى عَبْدَهُ يَبِيعُ وَيَشْتَرِي مثلاً که خپل غلام په اخستلو خرڅولو باندي اوګوری. فَسَكَتَ او خاموش پاتي شی. يَصِيرُ مَأْذُونًا عِنْدَنَا نو هغه به زموږ په نيز ماذون وی. خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ. په خلاف د امام زفر او امام شافعي ﷫، وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَبِيعَ عَيْنًا مَمْلُوكًا او په دي کي هيڅ توپير نشته. چه هغه د آقا مملوك مال خرڅوی. أَوْ لِأَجْنَبِيٍّ بِإِذْنِهِ يا د يو اجنبی، په اجازت سره وی. أَوْ بِغَيْرِ إِذْنِهِ بَيْعًا صَحِيحًا او که د اجازت نه بغير وی. بيع صحيح وی. أَوْ فَاسِدًا،او که فاسد وی. لِأَنَّ كُلَّ مَنْ رَآهُ يَظُنُّهُ مَأْذُونًا لَهُ فِيهَا ځکه چي ده لره څوك هم اووينی. ماذون فى التجارت به ني ګنړی. فَيُعَاقِدُهُ او دده سره به معامله کوی. فَيَتَضَرَّرُ بِهِ لَوْ لَمْ يَكُنْ مَأْذُونًا لَهُ،نو که دي ماذون نه وی. نو ضرر به اوچتوی. وَلَوْ لَمْ يَكُنِ الْمَوْلٰى رَاضِيًا بِهِ لَمَنَعَهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُمْ او که آقا په دي نه راضی کيدلو. نو د خلګو نه د ضرر دفع کاوه په خاطر به دي منع کړی.

تشريح: د تصرف اجازت چي څنګه په صريح نطق سره ثابتيږی. دغه ډول په دلالت حال سره هم ثابتيږی. مثلاً آقا خپل غلام په اخستلو خرڅولو باندي اوکتلو. او خاموش پاتي شو. نو دا دده د اړخه اجازت دي. او غلام به ماذون فى التجارة شی. که د آقا مال ني خرڅ کړي وی. يا ني د يو اجنبی مال خرڅ کړي وی. بيع صحيح وی. او که فاسد وی. په عنايه، زيلعی ، ملتقی ، او شر نبلاليه وغيره کي هم داسي دی. وجه دا ده. چه کوم سړې هم دا غلام په داسي کتلو اوګوری. هغه به ده لره ماذون ګنړی. او دده سره به معامله کوی. اوس که دي ماذون نه وی. نو ضرر به متعلق کيږی. او که آقا په دي باندي راضی نه وو. نو دي به ني منع کړي وو. چه د خلګو ضرر لرې شی.

سوال: د امام زفر او ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز په مذکوره خاموشۍ سره اجازت نه ثابتيږي.هغوی دا فرمائي چه د خلګو خيالي ضرر لرې کول آقا باندې واجب نه دی.پاتې شو د هغه خاموش پاتې کيدل، نو ممکن ده.چه دا په دې وجه وی.چه هغه ته د خپل غلام فعل د اجازت نه بغير د کيدلو په وجه ناخوښه شوې دې.نو هغه د غصې په وجه خاموش شو؟

جواب: دا دې.چه خلګ به دده چوپوالي اجازت ګڼړی.ځکه چې دا د بيان موقع ده.او ددې نه روسته چې کله په غلام باندې قرضه راواوړی.نو هغه به خلګ دده د سپ نه وصولوی.او دغه وخت به د آقا دا عذر هيڅ فائده نه ورکوی.چه زه خو د غصې په وجه خاموش شوې ووم.

## د عبد ماذون تفصيلي احکام

قَالَ (وَإِذَا أَذِنَ الْمَوْلَى لِعَبْدِهِ فِي التِّجَارَةِ إِذْنًا عَامًّا) کله چې اجازت ورکړو.آقا خپل غلام ته د تجارت عام اجازت، (جَازَ تَصَرُّفُهُ فِي سَائِرِ التِّجَارَاتِ) نو جائز به وی.دده تصرف په ټولو تجارتونو کې ، وَمَعْنَى هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ أَنْ يَقُولَ لَهُ او ددې مسئلې مطلب دا دې.چه آقا غلام ته دا اووائي.أَذِنْتُ لَكَ فِي التِّجَارَةِ چې ما تا ته د تجارت اجازت درکړو.وَلَا يُقَيِّدُهُ.او دا مقيد نکړی.وَوَجْهُهُ أَنَّ التِّجَارَةَ اسْمٌ عَامٌّ او وجه ددې دا ده.چه تجارت اسم عام دې.يَتَنَاوَلُ الْجِنْسَ چې دا جنس تجارت ته ګډ دې.فَيَبِيعُ وَيَشْتَرِي مَا بَدَا لَهُ مِنْ أَنْوَاعِ الْأَعْيَانِ.نو غلام دې خرڅوی.او اخلی دې.څه چې دده زړه غواړی.د څيزونو په انواعو کې .لِأَنَّهُ أَصْلُ التِّجَارَةِ ځکه چې هم دا اصل تجارت دې.

تشريح: که آقا خپل غلام ته عام اجازت ورکړو.د يو معين شي يا د خاص ډول تجارت سره ئې مقيد نکړو.مثلاً داسې ئې اووئيل.چه ما تا ته د تجارت اجازت درکړو.نو غلام ته به د هرقسمه تجارت اجازت وی.يعنی دده لپاره اخستل، خرڅول، وکيل جوړول، رهن ايخودل، رهن اخستل، اجرت باندې اخستل،مضاربت کول،د پور يا امانت، يا د غصب اقرار کول،غرض دا چې واړه تصرفات جائز دی.ځکه چې د آقا په قول «اذنت لك في التجارة...» کې لفظ د تجارت اسم جنس محلی باللام دې.نو دا عام شو.نو د تجارت ټولو انواعو او د تجارت لوازمو ته به ګډ وی.

## د غلام په تجارت کښې د تاوان حکم

(وَلَوْ بَاعَ أَوْ اشْتَرَى بِالْغَبْنِ الْيَسِيرِ) که ده واخستل، يا ئې خرڅ کړل.په معمولي تاوان سره.(فَهُوَ جَائِزٌ) نو جائز دی.لِتَعَذُّرِ الِاحْتِرَازِ عَنْهُ ځکه چې ددې نه خان بچ کول متعذر دی.(وَكَذَا بِالْفَاحِشِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ[1]) دغه ډول زيات تاوان سره ( هم جائز دی ) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،(خِلَافًا لَهُمَا) هُمَا يَقُولَانِ په خلاف د صاحبينو رحمهما الله ، دوی فرمائي.إِنَّ الْبَيْعَ بِالْفَاحِشِ مِنْهُ بِمَنْزِلَةِ التَّبَرُّعِ، چې دده د اړخه په زيات تاوان سره خرڅول په مرتبه د تبرع دی.حَتَّى اعْتُبِرَ مِنَ الْمَرِيضِ مِنْ ثُلُثِ مَالِهِ تردې چې د مريض د اړخه دا دده د دريمې برخې (حصې) مال نه معتبر کيږی.فَلَا يَنْتَظِمُهُ الْإِذْنُ كَالْهِبَةِ. نو اجازت به دې ته ګډ نه وی.د هبې پشان،

تشريح: که عبد ماذون په معمولی شان تاوان سره اخستل خرڅول اوکړل.نو دا جائز دی.ځکه چې ددې نه بچ کيدل متعذر دی.( د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز صرف ثمن مثل سره جائز دی ) بلکه په غبن فاحش ( ډير تاوان ) سره وی.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز بيا هم جائز دی.د صاحبينو رحمهما الله ، د امام زفر، امام شافعي ،او د امام احمد رحمهم الله په نيز جائز نه دی.هغوی دا فرمائي.چه د عبد ماذون د اړخه زيات تاوان سره خرڅول په مرتبه د تبرع دی.چه دا د مقصود خلاف دی.ځکه چې مقصود نفع حاصلول دی.ضائع کول

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٥٠١\٤) وملتقى الأبحر (٤\٦٥) ورسائل ابن عابدين (١\٣٧) والدر المختار (٥\١١١) ومجمع الأنهر (٤\٦٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٥ ٤)



مقصود نه دی.تردې که مريض داسې اوکړی.نو دده د دريمې برخې (حصې) مال نه معتبر وی.نو د آقا اجازت به دې ته ګډ نه وی.لکه څنګه چې هبې ته ګډ نه دی.

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.أَنَّهُ تِجَارَةٌ چې دا هم تجارت دې.وَالْعَبْدُ مُتَصَرِّفٌ بِأَهْلِيَّةِ نَفْسِهِ او غلام پخپل ذاتی اهليت سره تصرف کونکې دې.فَصَارَ كَالْحُرِّ نو د آزاد پشان شو.وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ الْمَأْذُونُ ماشوم ماذون هم په دې اختلاف باندې ( مبنی ) دې.

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه په غبن فاحش ( زيات تاوان ) سره بيع کول هم تجارت دې.تبرع نه ده.ځکه چې ددې وقوع د عقد تجارت په ضمن کې شوې ده.او کوم شي چې د کوم شي په ضمن کې واقع شی.د هغې حکم هم د هغه شي وی.بيا عبد ماذون پخپل ذاتی اهليت سره تصرف کونکې دې.نو دده حکم د آزاد پشان شو.چه د آزاد سړی په غبن فاحش سره بيع جائز ده.نو د عبد ماذون بيع به هم جائز وی.

(وَلَوْ حَابَى فِي مَرَضِ مَوْتِهِ) که ده پخپل مرض الموت کې خبره اوکړله.(يُعْتَبَرُ مِنْ جَمِيعِ مَالِهِ) نو دا به دده په وارډ مال کې معتبره وی.(إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ) که دده په ذمه پور نه وی.(وَإِنْ كَانَ فَمِنْ جَمِيعِ مَا بَقِيَ) نو د پوره پاته څخه به معتبر وی.لِأَنَّ الِاقْتِصَارَ فِي الْحُرِّ عَلَى الثُّلُثِ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ ځکه چې د آزاد په حق کې په دريمه برخه باندې اکتفاء کول د وارثانو د حق په وجه دی.وَلَا وَارِثَ لِلْعَبْدِ،او د غلام هيڅ څوك وارث نشته.وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ مُحِيطًا بِمَا فِي يَدِهِ،او کله چې قرضه دده په پوره مقبوضه مال باندې محيط ( راګيرونکې) وی.يُقَالُ لِلْمُشْتَرِي نو مشتری ته به ووئيلې شی.أَدِّ جَمِيعَ الْمُحَابَاةِ وَإِلَّا فَارْدُدِ الْبَيْعَ كَمَا فِي الْحُرِّ چې پوره محابات ادا کړه.ګنی بيع واپس کړه.لکه څنګه چې د آزادئ په صورت کې کيږی.

تشريح: که عبد ماذون پخپل مرض الموت کې محابات اوکړو.يعنی د زيات قيمت شي ئې په کم قيمت باندې خرڅ کړو.يا ئې ددې وصيت اوکړو.چه مشتری ته خه عطيه ( بخشش) اورسيږی.نو که دده کل مال نه د محابات مقدار وتلې شی.نو بيع به جائز وی.مثلاً د زر درهمو شي ئې په اووه سوه درهمه خرڅ کړو.نو دا د درې سوه درهمو محابات دې.اوپوره مال هم په دومره اندازه يا ددې نه زيات دې.نو محابات به جائز وی په دې شرط چې آقا روغ وی.او په غلام باندې پور نه وی.او که په ده باندې قرضه وی.نو د پور نه روسته چې کوم پاته پاتې شی.د هغې څخه به معتبر وی.ځکه چې د آزادئ په صورت کې چې کوم محابات صرف د دريمې برخې (حصې) مال نه معتبر کيږی.هغه د وارثانو دحق په وجه دې.اود غلام هيڅ څوك وارث نشته.نو د کل مال څخه به معتبر وی.او که په غلام باندې قرضه محيط ( چاپيره) وی.نو محابات به باطل وی.او مشتری ته به ووئيلې شی.چه يا خو د محابات پوره مقدار ادا کړه.ګنی بيع رد کړه.لکه مثلاً که آزاد سړې پخپل مرض الموت کې محابات اوکړی.نو په دې کې هم دا کيږی.

(وَلَهُ أَنْ يُسَلِّمَ) او دده لپاره جائزدی.چه سلم لپاره مال ورکړی.(وَيَقْبَلَ السَّلَمَ) يا پخپله سلم قبول کړی.او مال واخلی.لِأَنَّهُ تِجَارَةٌ ځکه چې دا هم تجارت دې.(وَلَهُ أَنْ يُوَكِّلَ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ) او هغه د اخستلو او خرڅولو لپاره وکيل کولې هم شی.لِأَنَّهُ قَدْ لَا يَتَفَرَّغُ بِنَفْسِهِ ځکه چې کله کله دې پخپله نشی فارغ کيدې.قَالَ (وَيَرْهَنُ وَيَرْتَهِنُ) او دې رهن هم اخستلې او ورکولې شی.لِأَنَّهُمَا مِنْ تَوَابِعِ التِّجَارَةِ ځکه چې دا دواړه د تجارت د توابع څخه دی.فَإِنَّهُ إِيفَاءٌ وَاسْتِيفَاءٌ ځکه چې دا ادا کول او وصولول دی.(وَيَمْلِكُ أَنْ يَتَقَبَّلَ الْأَرْضَ) او ده ته اختيار دې.چه د زمکې اجاره قبوله کړی.(وَيَسْتَأْجِرَ الْأُجَرَاءَ وَالْبُيُوتَ) او اجيران ( مزدوران) په مزدورئ باندې او کمرې په کرايه باندې واخلی.لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ ځکه چې دا واړه د تجارت د اقسامو څخه دی.(وَيَأْخُذُ الْأَرْضَ مُزَارَعَةً) او دا چې واخلې مځکه په کرونده باندې، لِأَنَّ فِيهِ تَحْصِيلَ الرِّبْحِ ځکه چې دا نفع حاصلول دی.(وَيَشْتَرِي طَعَامًا فَيَزْرَعُهُ فِي أَرْضِهِ) او دا چې غله واخلی.او په مځکه کې ئې اوکری.لِأَنَّهُ يَقْصِدُ بِهِ الرِّبْحَ ځکه چې دې

سره د نفع قصد كولې شي. قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ "د نبی کریمﷺ ارشاد دی. {الزَّارِعُ يُتَاجِرُ رَبَّهُ}(١) چه زميدار خپل پروردګار سره تجارت کوی." (وَلَهُ أَنْ يُشَارِكَ شَرِكَةَ عِنَانٍ) او ده ته اختيار دې چه شركت عنان اوكړي. وَيَدْفَعَ الْمَالَ مُضَارَبَةً وَيَأْخُذَهَا) او مال په مضاربت باندې وركړي. يا واخلي. لِأَنَّهُ مِنْ عَادَةِ التُّجَّارِ ځكه چې دا د تاجرانو د عاداتو څخه دې.

تشريح: د ترجمې نه مطلب واضح دې.

(وَلَهُ أَنْ يُؤَاجِرَ نَفْسَهُ عِنْدَنَا) او دا چې دې خپل ځان په اجاره باندې وركړي. زمونږ په نيز، خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رحمه الله . وَهُوَ يَقُولُ: هغه دا فرمائي. لَا يَمْلِكُ الْعَقْدَ عَلَى نَفْسِهِ چې دې پخپل ذات باندې د عقد كاوه مالك نه دې. فَكَذَا عَلَى مَنَافِعِهَا نو پخپلو منافعو باندې به هم ده ته اختيار نه وي. لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ لَهَا. ځكه چې منافع د ذات تابع دی. وَلَنَا زمونږ دليل دا دې. أَنَّ نَفْسَهُ رَأْسُ مَالِهِ چې دده ذات دده راس المال دې. فَيَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِيهِ، إِلَّا إِذَا كَانَ يَتَضَمَّنُ إِبْطَالَ الْإِذْنِ كَالْبَيْعِ نو هغه به په دې كې د تصرف مالك وي. سوا د داسې تصرف نه كوم چې اجازت باطلولو ته متضمن وي. لكه خپل ځان خرڅول، لِأَنَّهُ يَنْحَجِرُ بِهِ، ځكه چې په دې سره به دې محجور شي. وَالرَّهْنَ، او لكه رهن كول، لِأَنَّهُ يُحْبَسُ بِهِ ځكه چې دې سره به دې قيد شي. فَلَا يَحْصُلُ مَقْصُودُ الْمَوْلَى. أَمَّا الْإِجَارَةُ فَلَا يَنْحَجِرُ بِهِ او د آقا مقصد به حاصل نشي. بهرحال اجاره نو په دې سره به دې نه محجور كيږي. وَيَحْصُلُ بِهِ الْمَقْصُودُ او مقصود به هم حاصليږي. وَهُوَ الرِّبْحُ فَيَمْلِكُهُ او هغه نفع ده. نو هغه به ددې مالك وي.

تشريح: زمونږ په نيز عبد ماذون خپل ځان هم په اجاره باندې وركولې شي. په خلاف د آئمه ثلاثه رحمهم الله، دوی دا فرمائي. چه غلام پخپل ذات باندې د عقد كاوه مالك نه دې. نو پخپلو منافعو به هم ددې اجازت نه وي. ځكه چې منافع د ذات تابع دی. زمونږ دليل دا دې. چه د عبد ماذون ذات خو دده راس المال دې. او هغه د خپل ذات په اعتماد باندې تجارت لپاره وتلې دې. نو هغه په دې كې هر قسمه تصرف كولې شي. سوا د داسې تصرف نه چې ددې په ضمن كې اجازت باطليږي. لكه خپل ځان خرڅول، چې په داسې تصرف سره به دې محجور كيږي. او لكه رهن كول، چې په دې سره به دې مرتهن سره قيد كيږي. او د آقا مقصد يعني نفع حاصلول به نه حاصليږي.

## د خاص څيز په اجازت سره د ټوله اقسامو د اذن حكم

قَالَ (فَإِنْ أَذِنَ لَهُ فِي نَوْعٍ مِنْهَا دُونَ غَيْرِهِ) كه اجازت ئې وركړو ده ته د تجارت د يو خاص نوع، ددې نه د علاوه ئې ورنكړو. (فَهُوَ مَأْذُونٌ فِي جَمِيعِهَا) نو هغه به په ټولو اقساموكې ماذون وي.

تشريح: كه آقا عبد ماذون ته د تجارت د يو خاص نوع اجازت وركړو. بيا به هم ده ته زمونږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د تجارت د ټولو انواعو اجازت وي.

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمائي. لَا يَكُونُ مَأْذُونًا إِلَّا فِي ذَلِكَ النَّوْعِ، چې ماذون به نه وي. مگر هم په دې نوع كې. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا نَهَاهُ عَنِ التَّصَرُّفِ فِي نَوْعٍ آخَرَ. او هم په دې اختلاف باندې (مبنی) دې. كله ئې چې دې په بل ډول كې د تصرف كاوه نه منع كړې وي. لَهُمَا ددوی دليل دا دې. أَنَّ الْإِذْنَ تَوْكِيلٌ وَإِنَابَةٌ مِنَ الْمَوْلَى، چې اذن د آقا ارخه توكيل او انابت دې. لِأَنَّهُ يَسْتَفِيدُ الْوِلَايَةَ مِنْ جِهَتِهِ ځكه هغه ولايت هم دده د ارخه حاصلوی. وَيَثْبُتُ الْحُكْمُ وَهُوَ الْمِلْكُ لَهُ دُونَ الْعَبْدِ، او حكم يعنی ملك هم دده لپاره ثابتيږي. غلام لپاره نه ثابتيږي. وَلِهَذَا يَمْلِكُ حَجْرَهُ په دې وجه آقا دده د محجور كاوه اختيار مند وي. فَيَتَخَصَّصُ بِمَا خَصَّهُ بِهِ كَالْمُضَارِبِ. نو اجازت به هم ددې سره خاص وي. د كوم چې ده تخصيص كړې دې. د مضارب پشان،

---

(١) الزيلعي رحمه الله غريب جد)_



تشريح: د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نيز به صرف په دې خاص نوع كې ماذون وي. د كوم ئې چې اجازت وركړې دې. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. هم دا اختلاف په دې صورت كې دې. كله چې آقا دې د يو خاص ډول د تجارت نه منع كړې وي. زمونږ په نيز به دې ممنوع نه وي. او د امام شافعي رحمه الله په نيز به ممنوع وي. دوی دا فرمائي. چه ماذون كول د آقا د اړخه وكيل كول او نائب جوړول وي. ځكه چې عبد ماذون ته د تصرف ولايت د آقا د اړخه حاصليږي. او حكم يعنی ملكيت آقا ته حاصليږي. عبد ماذون ته نه حاصليږي. هم دا وجه ده. چه آقا ته دده د محجور كاوه اختيار وي. نو د تجارت كوم نوع سره چې آقا تخصيص كړې دې. هغه تخصيص به صحيح وي. لكه څنګه چې د مضارب په حق كې صحيح وي.

وَلَنَا زمونږ دليل دا دې. أَنَّهُ إِسْقَاطُ الْحَقِّ وَفَكُّ الْحَجْرِ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ، چې اذن د حق اسقاط او حجر لرې كول دی. وَعِنْدَ ذَلِكَ تَظْهَرُ مَالِكِيَّةُ الْعَبْدِ او دغه وخت د غلام مالكيت ښكاره كيږي. فَلَا يَتَخَصَّصُ بِنَوْعٍ دُونَ نَوْعٍ نو يو نوع سره به اختصاص نه وي. بِخِلَافِ الْوَكِيلِ، په خلاف د وكيل، لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِي مَالِ غَيْرِهِ ځكه چې هغه د غير په مال كې تصرف كوی. فَيَثْبُتُ لَهُ الْوِلَايَةُ مِنْ جِهَتِهِ، نو هغه لپاره ولايت د غير د اړخه ثابت دې. وَحُكْمُ التَّصَرُّفِ وَهُوَ الْمِلْكُ وَاقِعٌ لِلْعَبْدِ، او د تصرف حكم يعنی ملك پخپله غلام لپاره واقع كيږي. حَتَّى كَانَ لَهُ أَنْ يَصْرِفَهُ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ وَالنَّفَقَةِ، تردې چې ده ته پخپل پور ادا كاوه او په نفقه كې د خرچ كاوه اختيار وي. وَمَا اسْتَغْنَى عَنْهُ يَخْلُفُهُ الْمَالِكُ فِيهِ او كوم بچ پاتې شی. هغې كې آقا دده خليفه وي.

تشريح: زمونږ دليل دا دې. چه اذن حجر لرې كول او حق ساقطول دی. چه ددې تحقيق په پيل كې تير شوې دې. او كله چې آقا خپل حق ساقط كړو. او حجر ئې لرې كړو. نو د غلام مالكيت ښكاره شو. نو يو خاص نوع تجارت سره به اختصاص نه وي. په خلاف د وكيل، چه هغه د بل په مال كې تصرف كوی. او ده ته ولايت د تصرف د بل د اړخه حاصليږي. او د ماذون په صورت كې د تصرف حكم يعنی ملكيت پخپله د غلام لپاره واقع كيږي. تردې چې ده ته د خپل پور ادا كاوه او په نفقه كې د خرچ كاوه اختيار وي. او په پاته پاتې مال كې آقا دده خليفه وي.

قَالَ (وَإِنْ أَذِنَ لَهُ فِي شَيْءٍ بِعَيْنِهِ او كه د يو معين شي اخستلو اجازت وركړي. فَلَيْسَ بِمَأْذُونٍ) نو هغه به ماذون نه وي. لِأَنَّهُ اسْتِخْدَامٌ، ځكه چې دا خو خدمت اخستل شو. وَمَعْنَاهُ أَنْ يَأْمُرَهُ بِشِرَاءِ ثَوْبٍ مُعَيَّنٍ لِلْكِسْوَةِ او ددې معنی دا ده. چه ده ته د لباس (اغوستلو) لپاره د كپړې اخستلو، أَوْ طَعَامٍ رِزْقًا لِأَهْلِهِ، يا د خپل اهل وعيال لپاره د غلې اخستلو حكم وركړو. وَهَذَا، لِأَنَّهُ لَوْ صَارَ مَأْذُونًا او ددې وجه دا ده. كه دې په دې سره هم ماذون شي. يَنْسَدُّ عَلَيْهِ بَابُ الِاسْتِخْدَامِ، نو د خدمت اخستلو دروازه به بنده شي. بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَدِّ إِلَيَّ الْغَلَّةَ كُلَّ شَهْرٍ كَذَا، په خلاف ددې چې ما ته د مياشتې دومره راكوه. أَوْ قَالَ يا وې وئيل. أَدِّ إِلَيَّ أَلْفًا وَأَنْتَ حُرٌّ، چې ما ته زر (درهمه) راكوه. او ته آزاد ئې. لِأَنَّهُ طَلَبَ مِنْهُ الْمَالَ ځكه چې آقا دده نه مال طلب كړې دې. وَلَا يَحْصُلُ إِلَّا بِالْكَسْبِ، او دا د مزدورئ نه بغير نشی حاصليدې. أَوْ قَالَ لَهُ يا ئې غلام ته اووئيل. اُقْعُدْ صَبَّاغًا أَوْ قَصَّارًا، چې رنګ كونكې يا دهوبی اوساته. لِأَنَّهُ أَذِنَ بِشِرَاءِ مَا لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ ځكه چې دا د هغه شئ د اخستلو اجازت دې. كوم چې د دوی دواړو لپاره ضروری دې. وَهُوَ نَوْعٌ او دا يو ډول دې. فَيَصِيرُ مَأْذُونًا فِي الْأَنْوَاعِ قَالَ نو دې به په ټولو اقسامو كې ماذون وي.

تشريح: د ترجمې نه مطلب ښكاره دې

(وَإِقْرَارُ الْمَأْذُونِ بِالدُّيُونِ وَالْغُصُوبِ جَائِزٌ) او د ماذون د قرضونو او د غصبونو اقرار كول جائز دې. (وَكَذَا بِالْوَدَائِعِ) او هم دغه ډول د امانتونو، لِأَنَّ الْإِقْرَارَ مِنْ تَوَابِعِ التِّجَارَةِ، ځكه چې اقرار د تجارت د توابعو څخه دې. إِذْ لَوْ لَمْ يَصِحَّ ځكه كه اقرار صحيح نه وي. لَاجْتَنَبَ النَّاسُ مُبَايَعَتَهُ وَمُعَامَلَتَهُ، نو خلگ به دده سره اخستل، خرڅول او د معامله كاوه نه بچ كيږي.

[illegible] تصديق اوكړي. يا تكذيب اوكړي. (د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د معاملې د قرضونو [illegible] قرضه نقده وي يا ځه
شي قيمت وي. او آقا دده تصديق اوكړي. او د غصب او هلاكاوه اقرار په دې صورت كې جائز دي. كله چې آقا ددې تصديق اوكړي
اقرار جائز دي. او د ودائع او امانتونو اقرار هم جائز دي. ځكه چې اقرار د تجارت د توابع او لوازمو څخه دي. كه اقرار
دغه ډول د ودائع او امانتونو اقرار هم جائز دي. ځكه چې اقرار د تجارت د توابع او لوازمو څخه دي
صحيح نه وي. نو خلګ به دده سره اخستل خرڅول او د معامله كاوه نه پرهيز كوي.

وَلَافَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ أَوْلَمْ يَكُنْ او په دې كې هيڅ توپير نشته. چه په ده باندې پور وي. او كه نه
وي. إِذَا كَانَ الْإِقْرَارُ فِي صِحَّتِهِ، كله چې اقرار دده په صحت كې وي. فَإِنْ كَانَ فِي مَرَضِهِ او كه په حالت د مرض
كې وي. يُقَدَّمُ دَيْنُ الصِّحَّةِ كَمَا فِي الْحُرِّ نو د صحت پور به وړاندې كولې شي. لكه څنګه چې د آزاد په صورت
كې كيږي. بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ بِمَا يَجِبُ مِنَ الْمَالِ لَا بِسَبَبِ التِّجَارَةِ په خلاف د داسې مال د اقرار، كوم چې د تجارت د
سبب نه بغير واجب شوي دي. لِأَنَّهُ كَالْمَحْجُورِ فِي حَقِّهِ ځكه چې د هغې په حق كې دې د محجور پشان دي.

تشريح: بيا د عبد ماذون اقرار بهرحال صحيح دي. كه په مذكوره ماذون باندې پور وي. او كه نه وي. په دې
شرط چې دا اقرار دده د صحت په حالت كې واقع شوي وي. او كه ده په مرض الموت كې اقرار اوكړو. نو كه
په ده باندې د صحت د حالت قرضه وي. نو دا به په دې اقرار باندې مخكې كولې شي. لكه څنګه چې د آزاد
سړي په صورت كې كيږي. بيا دا حكم په هغه اقرار كې دي. كوم چې د تجارت په سبب وي. كه ده د داسې
مال اقرار اوكړو. كوم چې د تجارت د سبب نه علاوه سره واجب شوي وي. نو دا اقرار به صحيح نه وي. ځكه
چې هغه د داسې اقرار په حق كې د عبد محجور پشان دي. مثلاً د كفالت يا د غير د مال هلاكولو، يا د زخم
د جرمانې، يا د مهر اقرار اوكړو. نو دا به د آقا په حق كې نه نافذ كيږي. بلكه هغه به په دې كې د آزادئ نه
روسته ګرفتارولې شي.

## كوم امور چې د ماذون لپاره نا جائز دي

قَالَ (وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ) او ماذون ته د نكاح كاوه اختيار نشته. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ. ځكه چې دا تجارت نه
دي. قَالَ (وَلَا يُزَوِّجُ مَمَالِيكَهُ) او د خپلو مملوكو (وينځو او غلامانو) نكاح هم نشي كولې. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: امام
ابويوسف رحمه الله فرمائي. يُزَوِّجُ الْأَمَةَ، چې د وينځې نكاح كولې شي. لِأَنَّهُ تَحْصِيلُ الْمَالِ بِمَنَافِعِهَا ځكه چې دا ددې
د منافعو په عوض مال حاصلول دي. فَأَشْبَهَ إِجَارَتَهَا. نو دا په مزدورئ باندې د ور كاوه پشان شو. وَلَهُمَا أَنَّ
الْإِذْنَ يَتَضَمَّنُ التِّجَارَةَ د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي. چه اجازت تجارت ته ګډ دي. وَهَذَا لَيْسَ بِتِجَارَةٍ، او دا تجارت نه
دي. وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ تَزْوِيجَ الْعَبْدِ، په دې وجه دي د غلام د نكاح كاوه نه مالك كيږي.

تشريح: عبد ماذون ته دا اختيار نشته. چه هغه خپله نكاح اوكړي. ځكه چې دا څه تجارت نه دي. او د طرفينو
او ائمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د عبد ماذون په مال تجارت كې چې كوم غلام يا وينځه وي. د هغوی نكاح هم نشي
كولې.

**د امام ابويوسف رحمه الله مسلك**⊙ د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د وينځې د واده اختيار شته. ځكه چې د وينځې په
منافعو سره مال يعنى مهر حاصليږي. او اجازت نه مقصود مال حاصلول دي. نو داسې شوه. لكه وينځه په
مزدورئ باندې وركول، چې دا جائز دي.

**د طرفينو او ائمه ثلاثه رحمهم الله دليل**⊙ د طرفينو رحمهما الله دليل دا دي. چه د اجازت مقصد مال حاصلول دي. دا منو خو
دا مطلقاً نه دي. چه هغه د مكاتب پشان څنګه غواړي. مال حاصل كړي. بلكه مال حاصلول په داسې طريقه
پكار دي. چه هغه د باب تجارت څخه وي. او د وينځې نكاح كول هيڅ تجارت نه دي. په دې وجه ده ته د غلام
د واده اختيار نه وي.

عَلَى هَذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ الْمَأْذُونُ او هم په دې اختلاف باندې (مبنى) دي. صبى ماذون، وَالْمُضَارِبُ مضارب،



وَالشَّرِيكُ شَرِكَةَ عِنَانٍ وَالْأَبُ وَالْوَصِيُّ د شركت عنان شريك پلار او وصى.

تشريح: د ماشوم ماذون، مضارب، شريك عنان، او د پلار او وصى په اړه كې هم دا اختلاف دي چه دا خلګ د
طرفينو رحمهما الله په نيز د وينځې نكاح نشي كولې. او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز كولې شي. او د غلام نكاح
بالاتفاق نشي كولې. مطلب دا دي كه د ماشوم په ملكيت كې وينځه وي. نو دده پلار ته دا اختيار نشته چه
دده د وينځې نكاح اوكړي. او كه پلار مړ شوي وي. نو دده وصى ته هم دا اختيار نشته. دغه ډول كه په
مضاربت باندې ئې مال وركړي وي. نو مضارب ته هم دا اختيار نشته. چه هغه د مال مضاربت د وينځې
نكاح اوكړي. دغه ډول شريك عنان او ماشوم ماذون ته هم اختيار نشته.

تنبيه⊙ شيخ سغناقي رحمه الله په مذكوره قول باندې دا اعتراض كړي دي چه ددې نه وړاندې علامه مرغيناني
رحمه الله په كتاب المكاتب كې د،، باب ما يجوز للمكاتب أن يفعله،، لاندې ليكلي وو. «و كذالك الأب و الوصي في رقيق
الصغير بمنزلة المكاتب» يعنى پلار او وصى ته دا اختيار شته چه هغه د ماشوم د وينځې نكاح اوكړي. ځكه چې
دوى ئې د اختلاف نه بغير په مرتبه د مكاتب ګرځولي وو. او مكاتب ته بالاتفاق د خپلې وينځې د نكاح
اختيار شته. او دلته كې دا وائي. چه «و على هذا الخلاف الأب والوصي»
ددې نه روسته موصوف فرمائي. چه د كتاب المكاتب والا روايت زيات صحيح دي. ځكه چې هم دا روايت
د مبسوط تتمه مختصر الكافي او د احكام صغار موافق دي. د مبسوط په باب نكاح العبيد كې دي. «و
إذا زوج الأب أمة إبنه و هو صغير فذالك جائز و كذالك الوصي إذا زوج أمة اليتيم و كذالك المكاتب إذا زوج أمته و كذالك المفاوض
إذا زوج أمة من الشركة لأن تزويج الأمة من عقود الإكتساب فإنه يكتسب به المهر و يسقط به نفقتها عنه و هؤلاء الأربعة يملكون
الإكتساب» ،،كه پلار د خپل ماشوم بچي د وينځې نكاح اوكړله نو دا جائز دي. هم دغه ډول كه وصى د يتيم
بچي د وينځې يا مكاتب د خپلې وينځې، يا د شركت عنان شريك د شركت د وينځې نكاح اوكړي. نو جائز
دي. ځكه چې د وينځې واده كول د ګټې حاصلولو د عقودو څخه دي. چه ددې په ذريعه مهر حاصليږي. او
دده د ذمې نه د وينځې نفقه ساقطيږي. او مذكوره څلور نفر د نفع حاصلولو اختيار لري.،، دغه ډول په
كتاب اليتيمه كې دي. «الأب و الوصي يملكان تزويج أمة الصغير و لا يملكان تزويج عبده» ددې ځواب په قول د
بعضو شارحينو دا دي. چه ممكن ده په دې مسئله كې دوې (دوه) روايتونه وي.

## ماذون غلام لپاره د غلام مكاتب كولو حكم

قَالَ (وَلَا يُكَاتِبُ) او نه به مكاتب كوي. لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتِجَارَةٍ، ځكه چې دا تجارت نه دي. إِذْ هِيَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ
بِالْمَالِ، ځكه چې تجارت مبادله د مال بالمال ده. وَالْبَدَلُ فِيهِ مُقَابَلٌ بِفَكِّ الْحَجْرِ حالانكه كتابت كې بدل د حجر
لرې كاوه په مقابله كې وي. فَلَمْ يَكُنْ تِجَارَةً نو دا تجارت نشو. (إِلَّا أَنْ يُجِيزَهُ الْمَوْلَى) خو دا كه آقا ددې اجازت
وركړي. (وَلَا دَيْنَ عَلَيْهِ) او ماذون باندې پور نه وي. لِأَنَّ الْمَوْلَى قَدْ مَلَكَهُ ځكه چې آقا دده د مزدورئ مالك
دي. وَيَصِيرُ الْعَبْدُ نَائِبًا عَنْهُ او ماذون به دده د اړخه نائب وي. وَتَرْجِعُ الْحُقُوقُ إِلَى الْمَوْلَى او حقوق به آقا اړخ ته واپس
كيږي. لِأَنَّ الْوَكِيلَ فِي الْكِتَابَةِ سَفِيرٌ. ځكه چې وكيل كتابت كې سفير محض وي.

تشريح: عبد ماذون ته دا اختيار نشته. چه هغه خپل غلام مكاتب كړي. ځكه چې دا هيڅ تجارت نه دي. البته
كه آقا ددې اجازت وركړي. او د ماذون په ذمه قرضه نه وي. نو كتابت به جائز وي. ځكه چې د امام ابوحنيفه
رحمه الله په مذهب باندې آقا د خپل ماذون د منافعو مالك وي. كله چې هغه قرضدار نه وي. نو هغه به په دې كار
كې دده د اړخه نائب كيږي. او د كتابت حقوق (د بدل كتابت مطالبه، د عجز په وخت د فسخ ولايت، د
آزادئ نه روسته ثبوت د ولاء) واړه به آقا اړخ ته راجع وي. ځكه چې په باب د كتابت كې د حقوقو تعلق وكيل
سره نه وي. هغه خو سفير محض وي.

قَالَ (وَلَا يُعْتِقُ عَلَى مَالٍ) او نه به آزادوي په مال باندې. لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْكِتَابَةَ ځكه چې هر كله دې د كتابت

مالك نه دي. فَالْإِعْتَاقُ أَوْلَى نو د آزادولو به په طريقه اولى مالك نه وي. (وَلَا يُ پور) او نه به پور ورکوي. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ كَالْهِبَةِ. ځکه چې دا خو د هبې پشان صرف احسان دي. (وَلَا يَهَبُ بِعِوَضٍ وَلَا بِغَيْرِ عِوَضٍ، وَكَذَا لَا يَتَصَدَّقُ) او نه به هبه کوي. نه په عوض اونه بغير د عوض نه، او نه دې صدقه ورکوي. لِأَنَّ كُلَّ ذَلِكَ تَبَرُّعٌ بِصَرِيحِهِ ابْتِدَاءً وَانْتِهَاءً أَوِ ابْتِدَاءً ځکه چې دا واړه صريح احسانات دي. ابتداءً ، او انتهاءً ، يا صرف ابتداءً . فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَ الْإِذْنِ بِالتِّجَارَةِ. نو دا به د تجارت په اجازت کې داخل نه وي.

تشريح: د ترجمې نه مطلب واضح ده

قَالَ (إِلَّا أَنْ يُهْدِيَ الْيَسِيرَ مِنَ الطَّعَامِ) خو دا چې معمولي شان خوراك هديه کړي. (أَوْ يُضَيِّفَ مَنْ يُطْعِمُهُ) يا د هغه کس ملمستيا اوکړي. چا چې په ده باندې خوراك کړې دې. لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ التِّجَارَةِ اسْتِجْلَابًا لِلْقُلُوبِ الْمُجَاهِزِينَ، ځکه چې دا د تجارت د ضروورياتو ځنې دي. د مالداره تاجرانو ( سوداګرو) زړه مائل کاوه دپاره. بِخِلَافِ الْمَحْجُورِ عَلَيْهِ، په خلاف د عبد محجور، لِأَنَّهُ لَا إِذْنَ لَهُ أَصْلًا چې دده لپاره خو د سره اجازت نشته. فَكَيْفَ يَثْبُتُ مَا هُوَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ . نو د تجارت د ضروورياتو اجازت به څنګه ثابت وي. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دی. أَنَّ الْمَحْجُورَ عَلَيْهِ إِذَا أَعْطَاهُ الْمَوْلَى قُوتَ يَوْمِهِ كه آقا عبد محجور ته ددې ورځې روزينه ( خوراكه) ورکړله. فَدَعَا بَعْضَ رُفَقَائِهِ عَلَى ذَلِكَ الطَّعَامِ او ده په دې خوراك باندې خپل بعضې دوستانو له دعوت ورکړو. فَلَا بَأْسَ بِهِ، نو په دې کې هيڅ باك نشته. بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْطَاهُ قُوتَ شَهْرٍ په خلاف ددې کله چې آقا ده ته د يو مياشت روزينه ( خرچه) ورکړله. لِأَنَّهُمْ لَوْ أَكَلُوهُ قَبْلَ الشَّهْرِ ځکه که دا ( خرچه) د مياشت نه مخکې اوخوړله. يَتَضَرَّرُ بِهِ الْمَوْلَى. نو په دې سره به آقا ته نقصان رسيږي.

تشريح: د ،،ولا يهب،، نه استثناء ده. او د ،، من الطعـام،، قيد دې اړخ ته اشاره کوي. چه د غير ماكولات هديه به بالکل جائز نه وي. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې. د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله په نيز دلته د آقا د اجازت نه بغير ددې اختيار هم نشته. او هم دغه ډول ددوی په نيز د معمولي ملمستيا حکم دې. «ولـــا ان النبي ﷺ كان يجيب دعوة المملوك».

قَالُوا: مشائخو ونيلي دي. وَلَا بَأْسَ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَتَصَدَّقَ مِنْ مَنْزِلِ زَوْجِهَا بِالشَّيْءِ الْيَسِيرِ كَالرَّغِيفِ وَنَحْوِهِ، چې ښځې لپاره هيڅ باك نشته. چه هغه د خپل ميړه د کور نه معمولي شئ پشان د ډوډۍ وغيره صدقه کړي. لِأَنَّ ذَلِكَ غَيْرُ مَمْنُوعٍ عَنْهُ فِي الْعَادَةِ ځکه چې دا خبره عادتاً ( په عامه توګه (عام طور) باندې) ممنوع نه وي. قَالَ (وَلَهُ أَنْ يَحُطَّ مِنَ الثَّمَنِ بِالْعَيْبِ مِثْلَ مَا يَحُطُّ التُّجَّارُ) او ده ته اختيار دې. چه ثمن کړي. د عيب په وجه. دومره څومره چې سوداګر خلګ کمه وي. لِأَنَّهُ مِنْ صَنِيعِهِمْ، ځکه چې دا د تاجرانو د افعالو ځنې دي. وَرُبَّمَا يَكُونُ الْحَطُّ أَنْظَرَ لَهُ مِنْ قَبُولِ الْمَعِيبِ ابْتِدَاءً او بعضو وختونو کې په ابتداء کې کمول زيات غوره وي. د عيب دار مبيع واپس اخستلو نه، بِخِلَافِ مَا إِذَا حَطَّ مِنْ غَيْرِ عَيْبٍ په خلاف ددې کله چې د عيب نه بغير قيمت کم کړي. لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ مَحْضٌ بَعْدَ تَمَامِ الْعَقْدِ ځکه چې دعقد پوره کيدو نه روسته دا خالص تبرع (احسان) دې. فَلَيْسَ مِنْ صَنِيعِ التُّجَّارِ، چې داد تاجرانو د افعالو ځنې نه دې. وَلَا كَذَلِكَ الْمُحَابَاةُ فِي الْاِبْتِدَاءِ او په ابتداء کې د محابات ( د قيمت کمولو) دا حال نه دې. لِأَنَّهُ قَدْ يَحْتَاجُ إِلَيْهَا ځکه چې کله کله ددې ارتيا راپيښيږي. عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ (وَلَهُ أَنْ يُؤَجِّلَ فِي دَيْنٍ وَجَبَ لَهُ) او ده ته اختيار دې. چه مهلت ورکړي. په داسې پور کې ، کوم چې کوم چې دده لپاره واجب شوې دې. لِأَنَّهُ مِنْ عَادَةِ التِّجَارَةِ ځکه چې دا د سوداګرو د عادت ځنې دي.

تشريح: مشائخو ونيلي دي. چه په دې کې هيڅ باك نشته. چه ښځه د خپل ميړه د کور نه معمولي شئ صدقه ورکړي. لکه پيسه، روټۍ، خميره، مالګه، پياز وغيره، ځکه چې عادتاً ددې څيزونو نه ممانعت نه وي.



**سوال** ◉ په خطبة حجة الوداع والا حديث د ابوامامه رضي الله عنه کې دا راغلي دي. چه نبي کريم ﷺ ته عرض اوکړې شو. «ولا الطعام؟» آيا خوراك هم نشي ورکولې؟ نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل: «الطعام افضل امـوالكم» خوراك خو ستاسو په مالونو کې افضل مال دې؟

**جواب** ◉ ددې تاويل دا دې. چه غنم وغيره کوم چې ذخيره کړې شوی وي. د هغې نه ورکول ممنوع دی. يا مطلب دا دې. چه په دغه زمانه کې د غربت په وجه د ټولو نه افضل مال خوراك وو. يا کله چې الله تعالى فراخي ورکړله. نو خوراك ورکول عرف ( او رواج) شو.

## په ماذون غلام باندې د پور حکم

قَالَ (وَدُيُونُهُ مُتَعَلِّقَةٌ بِرَقَبَتِهِ يُبَاعُ لِلْغُرَمَاءِ إِلَّا أَنْ يَفْدِيَهُ الْمَوْلَى) او دده پور به دده سټ پورې متعلق وي. د قرضخواهانو لپاره به دې خرڅولې شي. خو که آقا دده فديه ورکړي.

تشريح: په عبد ماذون چې کومې پور را واوړي. هغه به دده په سټ پورې متعلق وي. چه د هغې د خلاصولو لپاره به قاضي دې خرڅوي. البته که آقا ددې فديه ورکړي. يعنې دده ټولې پور ادا کړي. نو دې به نشي خرڅولې. اوس په دې کې د صاحبينو رحمهما الله په قول باندې هيڅ اشکال نشته. ځکه که دين د آقا په ذمه وي. او هغه ددې د ادا کاوه نه ځان ساتي. نو د صاحبينو رحمهما الله په قول باندې قاضي د آقا د مرضۍ نه بغير غلام خرڅولې شي. او د آقا پور خلاصولې شي. او دلته هرکله چې قرضه پخپله د غلام په ذمه ده. نو په طريقه اولی به خرڅولې شي. ځکه چې دغلام قرضه پخپله دده په ذمه وي. او د آزاد قرضه دده مال سره هغه وخت متعلق کيږي. کله چې هغه په مرض الموت کې اخته شي. البته د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول باندې اشکال کيداې شي. ځکه ددوی اصول دا دې. چه کله په آزاد سړی باندې پور را واوړي. او هغه دا د قاضي په حکم کاوه باندې هم خلاصې نکړي. او قاضي دده د اجازت نه بغير دده مال خرڅول اوغواړي. نو قاضي ته ددې اختيار نشته. بلکه مذکوره قرضدار به د قيد په ذريعه د مال په خرڅولو باندې مجبوروولې شي. ترڅو چې هغه ئې پخپله خرڅ کړي. او خپلې پور ادا کړي ؟

**جواب** ◉ ددې اشکال ځواب دا دې. چه د آزاد په صورت کې چې امام ابوحنيفه رحمه الله قاضي ته د بيع اجازت نه ورکوي. هغه ځکه نه ورکوي. چه په دې کې د آزاد محجور کول لازميږي. ځکه چې آزاد سړې د خپل مال پخپله د خرڅولو اختيار لري. او هرکله چې قاضي دده د رضامندۍ نه بغير خرڅ کړو. نو دا په ازاد باندې حجر شو. حالانکه تاسو د آزاد د حجر قائل نه يئ. په خلاف د ماذون د صورت، چې په دې کې عبد ماذون د آقا د اجازت نه بغير خرڅولو سره د آقا محجور کول نه لازميږي. ځکه چې هغه خو ددې نه مخکې ددې غلام په خرڅولو سره محجور دې. نو که آقا عبد ماذون قرضدار د قرضخواهانو د اجازت نه بغير خرڅ کړي. نو بيع نه نافذ کيږي. او هرکله آقا د قاضي د بيع نه وړاندې محجور دې. نو د قاضي خرڅول د آقا محجور کول نشو. نو د قاضي بيع به جائز وي.

## د امام شافعي او امام زفر رحمهما الله مسلك

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: امام زفر او امام شافعي رحمهما الله فرمائي. لَا يُبَاعُ چې خرڅولې به نشي. وَيُبَاعُ كَسْبُهُ فِي دَيْنِهِ بِالْإِجْمَاعِ. او دده مزدوري ( منافع) به بالاتفاق دده په قرضه کې خرڅولې شي. لَهُمَا ددوی دليل دا دې. أَنَّ غَرَضَ الْمَوْلَى مِنَ الْإِذْنِ تَحْصِيلُ مَالٍ لَمْ يَكُنْ لَا تَفْوِيتُ مَالٍ قَدْ كَانَ لَهُ، چې د اجازت نه د آقا مقصد داسې مال حاصلول دي. چه هغه حاصل نه وو. داسې مال بربادول ( مقصود) نه وو. کوم چې دده سره وو. وَذَلِكَ فِي تَعْلِيقِ الدَّيْنِ بِكَسْبِهِ، او دا مقصد قرضه دده د مزدورۍ سره متعلقو کاوه کې ده. حَتَّى إِذَا فَضَلَ شَيْءٌ مِنْهُ عَنِ الدَّيْنِ يَحْصُلُ لَهُ لَا بِالرَّقَبَةِ، ترڅو چې قرضه ورکړي. او کوم څه بچ پاتې شي. هغه آقا ته حاصل شي. دده سټ سره ( متعلقو کولو کې ) نه ده. بِخِلَافِ دَيْنِ الْاِسْتِهْلَاكِ، په خلاف د دين استهلاك، لِأَنَّهُ نَوْعُ جِنَايَةٍ، ځکه چې دا يو ډول جرم

دي. وَاسْتِهْلَاكُ الرَّقَبَةِ بِالْجِنَايَةِ لَا يَتَعَلَّقُ بِالْإِذْنِ. او د جرم په وجه سټ ضائع کول، اجازت سره متعلق نه دی.

**تشریح:** د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نیز به عبد ماذون دده په قرضو کي نشي خرڅولی، پاتي شوه دده مزدوري (او منافع)، نو هغه به بالاتفاق دده په قرضو کي خرڅولی شي.

**د امام شافعي رحمه الله دلیل:** ددوی دلیل دا دي، چه اجازت ور کاوه سره د آقا مقصد داسي مال حاصلول دی، کوم چي ده نه حاصل نه وو. داسي نه چي کوم مال دده سره وو، هغه برباد شي، او دا مقصد په دي صورت کي حاصلیدي شي. کله چي قرضه دده منافعو سره متعلق وی، دده سټ سره متعلق نه وی، چه قرضه ور کاوه نه روسته کوم بچ پاتي شي، هغه آقا ته حاصل شي، په خلاف د دین استهلاك، چي که د یو شئ ضائع کاوه تاوان لازم شو، نو دا به بي شکه دده سټ سره متعلق وی، ځکه چي د غیر مال هلاکول جرم دي، او د جرم په وجه دده سټ ضائع کیدل، اجازت سره متعلق نه دی.

وَلَنَا زمونږ دلیل دا دي، أَنَّ الْوَاجِبَ فِي ذِمَّةِ الْعَبْدِ چي د غلام په ذمه څه واجب دی. ظَهَرَ وُجُوبُهُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى د هغي وجوب د آقا په حق کي هم ښکاره شو. فَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ اسْتِيفَاءً كَدَيْنِ الْاِسْتِهْلَاكِ، نو ددي وصولیدل به د غلام سټ سره متعلق وی، د دین استهلاك پشان، وَالْجَامِعُ دَفْعُ الضَّرَرِ عَنِ النَّاسِ، او امر جامع د خلګو نه ضرر لري کول دی. وَهَذَا لِأَنَّ سَبَبَهُ التِّجَارَةُ، او ددي وجه دا ده، چه ددي پور سبب تجارت دي. وَهِيَ دَاخِلَةٌ تَحْتَ الْإِذْنِ، او تجارت د اجازت لاندي داخل دي.

**تشریح:** زمونږ دلیل دا دي، چه د غلام په ذمه قرضه واجبیدل، د آقا په حق کي هم وجوب ښکاره کوی، نو ددي وصولول به دده سټ سره متعلق وی، لکه د مال ضائع کاوه تاوان بالاتفاق دده سټ سره متعلق کیږی. او ددي قیاس علت جامعه د خلګو نه ضرر لري کول دی، او دلته به هم د قرضخواهانو ضرر لري کیږی. او وجه ددي دا ده، چه ددي پور سبب تجارت دي، او تجارت د اجازت لاندي داخل دي.

وَتَعَلُّقُ الدَّيْنِ بِرَقَبَتِهِ اسْتِيفَاءً حَامِلٌ عَلَى الْمُعَامَلَةِ، او قرضه دده سټ سره متعلق کیدلو سره وصولیدل، د معاملي کاوه سبب شو. فَمِنْ هَذَا الْوَجْهِ صَلَحَ غَرَضًا لِلْمَوْلَى، نو په دي طریقه د آقا د غرض کیدو لائق دي. وَيَنْعَدِمُ الضَّرَرُ فِي حَقِّهِ بِدُخُولِ الْمَبِيعِ فِي مِلْكِهِ، او د آقا په حق کي ضرر دفع کیږی، دده په ملك کي د مبیع په راتلو سره،

**تشریح:** د امام شافعي او د امام زفر رحمهما الله د قول «إن غرض المولی من الإذن تحصیل مال» ځواب دي، چه د غلام سټ سره د قرضونو متعلق کیدل او وصولول، دا ددي خلګو په حق کي د معامله کاوه سبب شو. یعني کله چي معامله کونکی دا اوګوری، چه قرضه هم دده سره متعلق ده، نو هغوی به دده سره معامله کوی، چه په دي سره به نفع کي اضافه کیږی، که داسي نه وی، نو خلګ به د مال ډوبیدلو د خطري نه دده سره د معاملي کاوه نه منع کیږی. په دي لحاظ سره د غلام سټ سره د قرضو متعلق کیدل، د آقا د مقصد موافق دی. او په دي سره چي د آقا په حق کي کوم ضرر لاحق شي، هغه به د آقا په ملك کي د مبیع په راتلو سره لري کیږی.

وَتَعَلُّقُهُ بِالْكَسْبِ لَا يُنَافِي تَعَلُّقَهُ بِالرَّقَبَةِ او مزدوري سره د پور متعلق کیدل، دده سټ سره د متعلق کیدو منافي نه دي. فَيَتَعَلَّقُ بِهِمَا، غَيْرَ أَنَّهُ يُبْدَأُ بِالْكَسْبِ فِي الْاِسْتِيفَاءِ إِيفَاءً لِحَقِّ الْغُرَمَاءِ، نو دا به دواړو سره متعلق وی، صرف دومره خبره ده، چه په ادا کاوه سره ابتداء د مزدوري نه کولي شي، د قرضخواهانو د حق پوره کولو، وَإِبْقَاءً لِمَقْصُودِ الْمَوْلَى، او د آقا مقصد پاته ساتلو دپاره. وَعِنْدَ انْعِدَامِهِ يُسْتَوْفَى مِنَ الرَّقَبَةِ. او د مزدوري نه کیدلو په وخت به د رقبې نه پوره کولي شي

**تفصیل:** د یو سوال ځواب دي، سوال دا دي، چه کله دده منافعو سره د پور متعلق کیدو باندي اتفاق دي، نو بیا به دده سټ سره څنګه متعلق کیږی؟

**جواب:** دا دي، چه مزدوري سره د قرضو متعلق کیدل، ددي خبري منافي نه دی، چه دده سټ سره هم متعلق ... نو د پور تعلق به دده مزدوري او سټ دواړو سره وی، صرف دومره خبره ده، چه د ادا کاوه ابتداء به دده د



مزدوري نه کولي شي، چه د قرضخواهانو حق هم ادا شي، او د آقا مقصد هم حاصل شي، البته که مزدوري نه وی، نو پور به دده سټ سره متعلق کیږی.

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ دُيُونُهُ الْمُرَادُ مِنْهُ دَيْنٌ وَجَبَ بِالتِّجَارَةِ او په کتاب کي د دیون (قرضو) نه مراد داسي قرضه ده، چه هغه د تجارت په وجه واجب شوي وی. أَوْ بِمَا هُوَ فِي مَعْنَاهَا كَالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ وَالْإِجَارَةِ وَالْاِسْتِئْجَارِ وَضَمَانِ الْمَغْصُوبِ یا کوم چي د تجارت په معنی کي دي، لکه اخستل او خرڅول، اجاره ورکول، اجاره اخستل، ضمان د مغصوب. وَالْوَدَائِعِ وَالْأَمَانَاتِ إِذَا جَحَدَهَا، د ودیعت او امانت په انکار سره ضمانت، وَمَا يَجِبُ مِنَ الْعُقْرِ بِوَطْءِ الْمُشْتَرَاةِ بَعْدَ الْاِسْتِحْقَاقِ او هغه حق مهر کوم چي اخستي شوي وینځي سره د استحقاق نه روسته په وطی کاوه واجب شوي وی. لِاسْتِنَادِهِ إِلَى الشِّرَاءِ دده اخستلو ارخ ته د مستند کیدو په وجه، فَيَلْحَقُ بِهِ نو هم دي سره به لاحق کیږی.

**تشریح:** یعني په کتاب مختصر القدوری کي چي دا وئیلي شوي دی، چه «و دیونه متعلقة» په دي کي د دین نه مراد هغه قرضه ده. کومه چي عبد ماذون باندي د تجارت په وجه واجب شوي وی، لکه بیع او شراء، او په اجاره ورکول او اخستل وغیره، یا په داسي سبب سره واجب شوي وی، کوم چي د تجارت په معنی کي دی، لکه د ودیعت تاوان، او دهغه غصب او امانت تاوان، چي د هغي ماذون انکار کړي وی، او هغه مهر کوم چي د استحقاق نه روسته اخستي شوي وینځي سره په وطی کاوه باندي واجب شوي وی، هر داسي دین به د عبد ماذون ذات سره متعلق وی. او دي به د داسي دین په سلسله کي خرڅولي شي، چه د قرضخواهانو نقصان نه وی. او دده ثمن به د قرضخواهانو په منځ کي ددوی د برخو موافق تقسیمولي شي. که څه قرضه پاته پاتي شي، نو د هغي مطالبه به دده د آزادئ نه روسته کولي شي. ځکه چي قرضه خو دده په ذمه لګیدلي ده. او دده سټ د قرضونو ادا کاوه لپاره ناکافي شوه، نو پاته پاتي قرضه به د آزادئ نه روسته وصولولي شي.

**تشریح:** د ودائع ذکر کاوه نه روسته د امانت ذکر کاوه څه وجه ده؟ نو ځواب دا دي چي امانت د ودیعت نه زیات عام دي. لکه څنګه چي مضاربت په عاریت، شرکت، او بضاعت کي دي. بیا دا شیان د انکار په وخت غصب کیږی. «فکان الضمان بهذه الأشیاء ضمان غصب».

## په قرضخواهانو باندي د ماذون د ثمن تقسیمولو مسئله

قَالَ (وَيُقَسَّمُ ثَمَنُهُ بَيْنَهُمْ بِالْحِصَصِ) لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِالرَّقَبَةِ او تقسیمولي به شي، دده ثمن د قرضخواهانو په منځ کي، د برخو مطابق، سټ (د غلام) سره ددوی د حق متعلق کیدو په وجه، فَصَارَ كَتَعَلُّقِهَا بِالتَّرِكَةِ نو ترکه (میراث) سره د تعلق پشان شو. (فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ مِنْ دُيُونِهِ) بیا که په قرضه کي څه پاته پاتي شوه. طُولِبَ بِهِ بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ نو ددي مطالبه به د آزادئ نه روسته کیږی. لِتَقَرُّرِ الدَّيْنِ فِي ذِمَّتِهِ وَعَدَمِ وَفَاءِ الرَّقَبَةِ بِهِ دده په ذمه کي د پور ثابتیدو، او د ادا کاوه لپاره دده د سټ د ناکافي کیدو په وجه، (وَلَا يُبَاعُ ثَانِيًا) او دوباره به نشي خرڅولي. كَيْ لَا يَمْتَنِعَ الْبَيْعُ أَوْ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ الْمُشْتَرِي چي بیع ممتنع نشي، یا د مشتری نه د ضرر دفع کاوه دپاره،

**تشریح:** که د غلام مذکور د ثمن نه د قرضونو پوره ادائیګي اونشي، نو دي به دوباره نشي خرڅولي، چه ړومبئ بیع ممتنع نشي. یعني کله چي مشتري ته ددي خبري علم اوشي، چه کوم غلام ده اخستي دي، هغه به دده د اجازت نه بغیر دوباره خرڅولي شي، نو هغه به ددي اخستلو نه خان بچ کوی. یا به ئي دوباره خکه نه خرڅوی، چه د مشتری نه ضرر لري شي. ځکه چي مشتری هغه ته د تجارت اجازت نه دي ور کړي، نو هغه دده د دین په سبب سره دده په بیع باندي راضي نه دي. اوس که ددي باوجود دا خرڅ کړي شي، نو په مشتری به دده د التزام نه بغیر ضرر لازم شي، په خلاف د آقا، چي هغه غلام ته د تجارت اجازت ور کاوه سره ددي ضرر التزام کړي دي.

(وَيَتَعَلَّقُ دَيْنُهُ بِكَسْبِهِ) او دده قرضه به دده منافعو سره متعلق وی. سَوَاءٌ حَصَلَ قَبْلَ لُحُوقِ الدَّيْنِ أَوْ بَعْدَهُ که دده دا

(وَيَتَعَلَّقُ بِمَا يَقْبَلُ مِنَ الْهِبَةِ) او کومه منافع د پور متعلق کیدو نه مخکي حاصل شوي وي. او که ددي نه پس، او کومه هبه چي دې قبوله کړي. هغې سره به هم متعلق کیږي. لِأَنَّ الْمَوْلَى إِنَّمَا يَخْلُفُهُ فِي الْمِلْكِ بَعْدَ فَرَاغِهِ عَنْ حَاجَةِ الْعَبْدِ ځکه چي مولا خليفه کيږي. ددې (موهوب) په ملك کي، روسته د فراغت ددې (مزدورئ) د حاجت د غلام نه. وَلَمْ يَفْرُغْ حالانکه اوس هغه فارغ شوي نه دې. (وَلَا يَتَعَلَّقُ بِمَا انْتَزَعَهُ الْمَوْلَى مِنْ يَدِهِ قَبْلَ الدَّيْنِ) او نه به متعلق کیږي قرضه. دده مزدورئ سره کومه چي آقا د پور متعلق کیدو نه مخکي د غلام د قبضي نه اوښکلي وي. لِوُجُودِ شَرْطِ الْخُلُوصِ لَهُ د آقا لپاره د خالص ملکيت کيدلو شرط موجود کيدو په وجه،

**تشريح**: د عبد ماذون پور به دده مزدورئ سره متعلق وي. که دا مزدوري د دين متعلق کیدو نه مخکي حاصل شوي وي او که ددې نه پس، او کومه هبه چي دې قبوله کړي. هغې سره به هم متعلق کیږي. ځکه چي د موهوب په ملکيت کي چي آقا دده قائم مقام (او خليفه) وي. دا هغه وخت وي. کله چي دا مزدوري د غلام د اړتيا نه فارغ وي. حالانکه هغه تر اوسه دده د اړتيا نه فارغ نه ده. ځکه چي اوسه پورې قرضه دده سره متعلق ده. نو آقا اوس لا دده خليفه نشي کيدې.

او حاصل دا چي هر هغه مزدوري يا هبه کومه چي اوسه پورې د غلام په قبضه کي ده. او دده د اړتيا نه فارغ نه وي هغې سره به دين متعلق وي. البته داسې مال سره به قرضه متعلق نه وي. کومه چي د دين متعلق کيدو نه وړاندې آقا د غلام د قبضي نه اوښکلي وي ځکه چي دې کي آقا لپاره د خالص ملکيت کيدلو شرط اوموندې شو چه دا دده د غلام نفع ده. چه ددې سره د هيڅ يو قرضخواه حق متعلق نه دې.

(وَلَهُ أَنْ يَأْخُذَ غَلَّةَ مِثْلِهِ بَعْدَ الدَّيْنِ) او آقا ته اختيار دې چه واخلي. د داسې ډول غلام منافع، د پور کيدو نه پس. لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يُمَكَّنْ مِنْهُ ځکه که آقا ته دا قدرت ورنکړې شي. يَحْجُرُ عَلَيْهِ نو هغه به دې محجور کړي. فَلَا يَحْصُلُ الْكَسْبُ او منافع به نه حاصليږي وَالزِّيَادَةُ عَلَى غَلَّةِ الْمِثْلِ يَرُدُّهَا عَلَى الْغُرَمَاءِ لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ فِيهَا او ددې په مثل منافعو نه چي کوم زياتي وي. هغه دې قرضخواهانو ته واپس ورکړي. د اړتيا نه کيدلو، وَتَقَدُّمِ حَقِّهِمْ او د هغوی د حق مقدم کيدو په وجه.

**تشريح**: غلام باندې د پور متعلق کيدو نه روسته آقا ته اختيار دې چه د داسې غلام کوم منافع وي. هغه واخلي ځکه که آقا ته دا قدرت ورنکړې شي. نو هغه به محجور کړي. او هيڅ نفع به نه حاصليږي. بيا ددې پشان منافعو نه چي کوم زياتي وي. هغه دې قرضخواهانو ته واپس ورکړي. ځکه چي د زياتي په حق کي هيڅ اړتيا نشته. او د قرضخواهانو حق وړاندې دې

## د عبد ماذون محجور کول او ددې شرائط

قَالَ (فَإِنْ حُجِرَ عَلَيْهِ) که آقا عبد ماذون محجور کړو. (لَمْ يَنْحَجِرْ حَتَّى يَظْهَرَ حَجْرُهُ بَيْنَ أَهْلِ سُوقِهِ) نو هغه به نه محجور کيږي. ترڅو چي دده محجور کيدل، دده په بازار والا خلګو کي ښکاره شي. لِأَنَّهُ لَوْ انْحَجَرَ ځکه که محجور شي لَتَضَرَّرَ النَّاسُ بِهِ لِتَأَخُّرِ حَقِّهِمْ إِلَى مَا بَعْدَ الْعِتْقِ نو په دې سره به خلګ نقصان اوچتوي. ددوی حق د آزادئ نه روسته پورې د مؤخر کيدو په وجه. لِمَا لَمْ يَتَعَلَّقْ بِرَقَبَتِهِ وَكَسْبِهِ ځکه چي دده سټ يا منافعو سره تعلق پاتې نشو وَقَدْ بَايَعُوهُ عَلَى رَجَاءِ ذَلِكَ، حالانکه هغوی په دې اميد دده سره معامله کړې وه.

**تشريح**: که آقا عبد ماذون محجور کړو. نو هغه به محجور کيږي. په دې شرط چي هغه ته او د هغه اکثر بازار والا خلګو علم شوې وي. چه عبد ماذون سره معامله کونکو ته ضرر لازم نشي. د آئمه ثلاثه ﷺ په نيز د بازار خلګو ته معلوميدل ضروري نه دي. ځکه چي ددوی په نيز د وکالت پشان اجازت هم نيابت دې. موږ دا وايو که د علم حاصليدو نه بغير عبد ماذون محجور اوګرځولې شي. نو هغه چي د حجر نه روسته کوم تصرف کوي. د هغې د دين اداکول به د آزادئ نه روسته لازم وي. ګويا د معامله کونکو حق به مؤخر کولې



شي. چه دې کي د هغوی نقصان دې. ځکه چي هغوی دده سره معامله په دې اميد کړې وه. که دده قرضه ادا نکړې شوه. نو موږ به دده د سټ يا مزدورئ نه وصول کوو. او اوس به آقا دا ګواه قائموي. چه ما دې محجور کړې وو. نو هغوی صرف د آزادئ نه روسته وصولولې شي. حالانکه دده د آزاديدو اميد موهوم (او په شك کي) دې.

وَيُشْتَرَطُ عِلْمُ أَكْثَرِ أَهْلِ سُوقِهِ، او شرط دې. دده د اکثر بازار والا خلګو د خبريدلو، حَتَّى لَوْ حُجِرَ عَلَيْهِ فِي السُّوقِ ترڅو که ده ني په بازار کي محجور کړو. وَلَيْسَ فِيهِ إِلَّا رَجُلٌ أَوْ رَجُلَانِ چي هلته کي د يوکس دوو نه علاوه هيڅ څوك موجود نه وي. لَمْ يَنْحَجِرْ، نو هغه به محجور نه وي. وَلَوْ بَايَعُوهُ او که هغوی دده سره معامله اوکړله. جَازَ، وَإِنْ بَايَعَهُ الَّذِي عَلِمَ بِحَجْرِهِ نو جائز به وي. اګرچه هم هغه کس معامله اوکړي. کوم چي دده دمحجور کيدو نه خبر دې. وَلَوْ حُجِرَ عَلَيْهِ فِي بَيْتِهِ بِمَحْضَرٍ مِنْ أَكْثَرِ أَهْلِ سُوقِهِ او که محجور نې کړو. پخپل کور کي، دده د اکثر بازار والا خلګو په موجودګئ کي، يَنْحَجِرُ، نو هغه به محجور وي.

**تشريح**: او د محجور کيدو لپاره شرط دا دې. چه دده د بازار والا اکثر خلګ دده نه خبر شي. ترڅو که بازار ته لاړ شي. او په داسې حالت کي نې محجور کړي. چه هلته کي د يو کس دوي (دوه) نه علاوه بل هيڅ څوك موجود نه وي. نو هغه به محجور نه وي. او که په دې حالت کي د بازار والا خلګو دده سره معامله اوکړله. نو جائز به وي. اګرچه معامله هغه کس اوکړي. چا ته چي دده محجور کيدل معلوم دي. او که په کور کي نې محجور کړي. په داسې حال کي چي دده د بازار والا اکثر خلګ هلته موجود وو. نو محجور به وي.

وَالْمُعْتَبَرُ شُيُوعُ الْحَجْرِ او معتبر دده د حجر مشهورول دي. وَاشْتِهَارُهُ فَيُقَامُ ذَلِكَ مَقَامَ الظُّهُورِ عِنْدَ الْكُلِّ كَمَا فِي تَبْلِيغِ الرِّسَالَةِ مِنَ الرُّسُلِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ، او هم دا مشهورتيا به د ټولو په نيز د ښکاره کيدو قائم مقام وي. لکه څنګه چي د انبياء عليهم السلام نه د رسالت په ادا کاوه کي دي.

**تشريح**: او معتبر خبره دا ده. چه دده محجور کيدل مشهور شي. دا مشهورتيا به ددې امر قائم مقام وي. چه دده محجور کيدل په ټولو باندې ښکاره شو. لکه څنګه چي د انبياء عليهم السلام د اړخه د رسالت په ادا کاوه کي کيږي. که يو ذمي اسلام قبول کړي. او هغه ته د لمونځ وجوب معلوم نه وي. ترڅو چي زمانه تيره شي. نو دده په ذمه به ددې مونځونو قضاء لازم وي. ځکه چي دار الاسلام کي حکم د خطاب مشهور دې. خو که څوك حربي کس په دار الحرب کي اسلام راوړو. نو ترکومه پورې چي ده ته د لمونځ د وجوب علم نه وي. تر هغه وخته پورې به قضاء لازم نه وي. ځکه چي دار الحرب کي حکم د خطاب زيات نه دې خور شوې.

وَيَبْقَى الْعَبْدُ مَأْذُونًا إِلَى أَنْ يَعْلَمَ بِالْحَجْرِ او غلام به برابر ماذون وي. ترڅو چي ده ته خپل محجور کيدل معلوم شي. كَالْوَكِيلِ إِلَى أَنْ يَعْلَمَ بِالْعَزْلِ، لکه څنګه چي وکيل ته د ځان معزول کيدل معلوم نه وي. وَهَذَا لِأَنَّهُ يَتَضَرَّرُ بِهِ او دا ځکه چي غلام به په دې سره ضرر اوچتوي. حَيْثُ يَلْزَمُهُ قَضَاءُ الدَّيْنِ مِنْ خَالِصِ مَالِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ ځکه چي د آزادئ نه روسته به په ده باندې د خپل خالص مال نه قرضه ادا کول لازم وي. وَمَا رَضِيَ بِهِ، حالانکه هغه په دې سره نه دې راضي شوې. وَإِنَّمَا يُشْتَرَطُ الشُّيُوعُ فِي الْحَجْرِ إِذَا كَانَ الْإِذْنُ شَائِعًا. او په محجور کاوه کي د حجر مشهورولو شرط هغه وخت دې. کله چي اجازت مشهور شوې وي. أَمَّا إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ إِلَّا الْعَبْدُ او که دده د غلام نه علاوه بل هيڅ څوك خبر نه وي. ثُمَّ حُجِرَ عَلَيْهِ بِعِلْمٍ مِنْهُ يَنْحَجِرُ بيا هغه د غلام په خبريدلو کي دې محجور کړي. نو محجور به وي. لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ فِيهِ ځکه چي دې کي ضرر نشته.

**تشريح**: بيا به غلام مذکور برابر ماذون وي. ترڅو چي هغه ته خپل محجور کيدل معلوم شي. لکه څنګه چي وکيل د معزول کيدو نه خبر نشي. نو وکيل وي. ددې حکم وجه دا ده. که داسې اونشي. نو مذکوره غلام به په دې سره ضرر اوچتوي. ځکه چي د آزادئ نه روسته به په ده باندې د خپل خالص مال نه قرضه اداکول لازم وي. حالانکه هغه په دې سره راضي نه وو. بيا په محجور کيدلو کي د حجر د مشهورتيا شرط هغه وخت

دي کله چې اجازت مشهور شوې وي. اوکه د غلام نه علاوه بل څوك د اجازت نه خبر نه وي او آقا دده په علم (او خبریدو) کي محجور کړي نو محجور به وي. ځکه چې دې کي هیڅ ضرر نشته.

**د آقا د مرګ یا ارتداد حکم**

قَالَ (وَلَوْمَاتَ الْمَوْلٰی) که آقا مړ شو. (اَوْجُنَّ) یا لیوني شو. (اَوْلَحِقَ بِدَارِالْحَرْبِ مُرْتَدًّا) یا مرتد شو. یا دار الحرب کې ملاؤ شو. (صَارَالْمَاذُوْنُ مَحْجُوْرًا عَلَیْهِ) نو ماذون غلام به محجور ګرځیږي. لِاَنَّ الْاِذْنَ غَیْرُلَازِمٍ، ځکه چې اجازت لازم نه دي. وَمَالَایَکُوْنُ لَازِمًا مِنَ التَّصَرُّفِ یُعْطٰی لِدَوَامِهٖ حُکْمُ الْاِبْتِدَاءِ، او کوم اجازت چې لازم نه وي. د هغې دوام ته د ابتداء حکم ورکولې شي. هٰذَاهُوَالْاَصْلُ هم دا اصل دې. فَلَابُدَّمِنْ قِیَامِ اَهْلِیَّةِ الْاِذْنِ فِیْ حَالَةِ الْبَقَاءِ، نو په حالت د بقاء کي هم د اجازت اهلیت کیدل ضروري دي. وَهِیَ تَنْعَدِمُ بِالْمَوْتِ وَالْجُنُوْنِ، حالانکه دا په مرګ او جنون سره ختمیږي. وَکَذَابِاللُّحُوْقِ او دغه ډول دارالحرب کي ملاویدو سره هم (ختمیږي). لِاَنَّهٗ مَوْتٌ حُکْمًا حَتّٰی یُقْسَمَ مَالُهٗ بَیْنَ وَرَثَتِهٖ. ځکه چې حکمی ملاویدل مرګ دي. تردې چې دده مال دده په وارثانو کي تقسیمولې شي.

**تشریح:** که د عبد ماذون آقا مړشي. یا دائمي لیوني شي. یا مرتد شي. یا دار الحرب ته لاړ شي. بیا به هم عبد ماذون محجور کیږي. که غلام ته ددې امورو علم شوې وي. او که نه وي شوې. وجه دا ده. چه اذن غیر لازم تصرف دې. نو ددې د بقاء به هم هغه حکم وي. کوم چې د ابتداء دې. نو لکه ځنګه چې په ابتداء کي د اجازت اهلیت کیدل ضروري دي. دغه ډول په بقاء کي هم ددې کیدل ضروري دي. حالانکه د مرګ او د جنون په وجه د اجازت اهلیت ختمیږي. او دار الحرب ته په تللو سره هم اهلیت ختم شو. ځکه چې دا هم حکمی مرګ دې. تردې چې دده مال دده په وارثانو کي تقسیمولې شي. نو غلام به محجور ګرځیږي.

**د احنافو ﷭ مسلك**

قَالَ (وَاِذَا اَبَقَ الْعَبْدُ) کله چې غلام اوتختیدو. (صَارَمَحْجُوْرًا عَلَیْهِ) نو هغه به محجور ګرځیږي. وَقَالَ الشَّافِعِیُّ: امام شافعي ﷫ فرماني. یَبْقٰی مَاذُوْنًا، چې ماذون به پاته پاتې وي. لِاَنَّ الْاِبَاقَ لَایُنَافِیْ اِبْتِدَاءَ الْاِذْنِ، ځکه چې تختیدل د ابتدائي اجازت منافي نه دې. فَکَذَالَایُنَافِی الْبَقَاءَ نو هم دغه ډول به د بقاء منافي هم نه وي. وَصَارَکَالْغَصْبِ. او دا د غصب پشان شو.

**تشریح:** که عبد ماذون اوتختي. نو د تختیدو په وجه به هم محجور ګرځیږي. که بازار والا خلګو ته ددې علم وي. اوکه نه وي.

**د ائمه ثلاثه ﷭ مسلك** ◉ د امام زفر او ائمه ثلاثه ﷭ په نیز نه محجور کیږي. ځکه چې تختیدل په ابتداء کي د اذن منافي نه دې. نو په بقاء کي به هم د اذن منافي نه وي.

**د ائمه ثلاثه ﷭ دلیل** ◉ دا دې. چه د اذن صحت د مولا د ملك او دده د رائې په اعتبار سره کیږي. او د غلام په تختیدو سره د مولا ملك او دده په رائې کي هیڅ فتور (او نقصان) نه دې راغلې. نو په تختیدو سره به نه محجور کیږي. او دا د غصب پشان شو. که غصب کړې شوی غلام ته ئې اجازت ورکړو. یا ئې ماذون غصب کړو. نو اجازت نه باطلیږي. بلکه په ړومبي صورت کي اجازت جائز، او په دوهم صورت کي پاته پاتې کیږي.

وَلَنَا زمونږ دلیل دا دې. اَنَّ الْاِبَاقَ حَجْرٌدَلَالَةً، چې تختیدل حجر دې. دلالتاً. لِاَنَّهٗ اِنَّمَا یَرْضٰی بِکَوْنِهٖ مَاذُوْنًا عَلٰی وَجْهٍ یَتَمَکَّنُ مِنْ تَقْضِیَةِ دَیْنِهٖ بِکَسْبِهٖ، ځکه چې آقا دده په ماذون کیدو په دې طریقه راضي دې. چه هغه پخپلې مزدورۍ سره پخپلې پور ادا کاوه باندې قادر وي. بِخِلَافِ اِبْتِدَاءِ الْاِذْنِ په خلاف د ابتدائي اجازت. لِاَنَّ الدَّلَالَةَ لَامُعْتَبَرَبِهَا عِنْدَوُجُوْدِالتَّصْرِیْحِ بِخِلَافِهَا، ځکه چې د اجازت هیڅ اعتبار نه کیږي. ددې په خلاف د تصریح موجود کیدلو. وَبِخِلَافِ الْغَصْبِ او په خلاف دغصب. لِاَنَّ الْاِنْتِزَاعَ مِنْ یَدِالْغَاصِبِ مُتَیَسِّرٌ ځکه چې د غاصب د قبضې نه راوبسکل آسان دي.



**تشریح:** زمونږ دلیل دا دې. چه د غلام تختیدل دلالةً حجر دې. ځکه چې آقا د خپل سرکش او نافرمان غلام د تصرفاتو نه په عامه توګه (عام طور) باندې نه راضي کیږي. هغه خو د هغه په ماذون کیدو سره هغه وخت راضي کیږي. چه هغه پخپلې مزدورۍ سره خپله قرضه ادا کولې شي. په خلاف د ابتدائي اجازت. چې تختیدلي غلام ته په ابتداء کي اجازت ورکول جائز دي. او په دلالت سره به نه محجور کیږي. ځکه چې کله د دلالت په خلاف تصریح موجود وي. نو د دلالت هیڅ اعتبار نه کیږي. او په خلاف د غصب، چې مغصوب غلام ته هم اجازت ورکول جائز دي. او که هغه ماذون وي. نو په غصب سره نه محجور کیږي. ځکه چې د غاصب د قبضې نه اوبسکل آسان دي. تردې که ممکن نه وي. نو اجازت به پاته نه پاتې کیږي. او ابتدائي اجازت ورکول به هم صحیح نه وي.

**فائده** ◉ که ماذون غلام د تختیدو نه روسته واپس راشي. نو مخکنې اجازت به واپس راځي، اوکه نه؟ دا امام محمد ﷫ نه دې ذکر کړې. او صحیح دا ده. چه اجازت به واپس نه راځي.

**د ماذونه وینځې د اولاد پیدا کیدو نه روسته حکم**

قَالَ (وَاِذَا وَلَدَتِ الْمَاْذُوْنُ لَهَامِنْ مَوْلَاهَا) که ماذونه وینځې د خپل آقا نه بچې راوړو. فَذٰلِكَ حَجْرٌعَلَیْهَا نو دا په دې باندې حجر دې. خِلَافًا لِزُفَرَ، په خلاف د امام زفر ﷫. وَهُوَیَعْتَبِرُحَالَةَ الْبَقَاءِ بِالْاِبْتِدَاءِ. چې هغه بقاء په ابتداء باندې قیاس کوی. وَلَنَا زمونږ دلیل دا دې. اَنَّ الظَّاهِرَاَنَّهٗ یُحَصِّنُهَا بَعْدَ الْوِلَادَةِ چې ښکاره هم دا ده. چه آقا به دا د خلګو د میل ملاپ (او ناستې پاستې) نه محفوظه ساتي. فَیَکُوْنُ دَلَالَةَ الْحَجْرِعَادَةً، نو دا د عادت په طور د حجر دلیل دې. بِخِلَافِ الْاِبْتِدَاءِ، په خلاف د ابتداء، لِاَنَّ الصَّرِیْحَ قَاضٍ عَلَی الدَّلَالَةِ، ځکه چې صریح اجازت دلالت باندې حاکم وي.

**تشریح:** یوه وینځه ماذونه وه. آقا هغې سره وطي اوکړله. او هغې نه بچې پیدا شو. آقا د بچې دعوه اوکړله نو وینځه دده ام ولد شوه. اوس به هغه د استیلاد په وجه محجور التصرف ګرځیږي. خو دلالةً.

**د امام زفر او ائمه ثلاثه ﷭ مسلك** ◉ د امام زفر او ائمه ثلاثه ﷭ په نیز به محجور نه وي. ځکه چې استیلاد په ابتداء کي د اذن منافي نه دې. ځکه چې آقا خپلې ام ولد ته د تجارت اجازت ورکولې شي. نو بقاء به په طریقه اولی منافي نه وي.

**د احنافو ﷭ دلیل** ◉ مونږ دا وایو. چه ام ولد په عامه توګه (عام طور) باندې پرده کي اوسیږي. او د اخستلو او خرڅولو په سلسله کي مالك ددې په وتلو او د خلګو سره میل ملاپ کاوه باندې نه راضي کیږي. نو دا ددې د محجور کیدو دلیل دې. البته که مالك د استیلاد نه روسته د تجارت د اذن صراحت اوکړي. نو حجر به نه ثابتیږي. ځکه چې صراحت د دلالت نه زیات قوي دې.

(وَیَضْمَنُ الْمَوْلٰی قِیْمَتَهَا) او آقا به ضامن وي. ددې د قیمت. (اِنْ رَکِبَتْهَا دُیُوْنٌ) لِاِتْلَافِهٖ مَحَلًّا که په دې باندې پور را واوښتې وي. دده د داسې محل ختمیدلو په وجه، تَعَلَّقَ بِهٖ حَقُّ الْغُرَمَاءِ، چې هغې سره د قرضخواهانو حق متعلق وو. اِذْبِهٖ یَمْتَنِعُ الْبَیْعُ ځکه چې د استیلاد په وجه ددې بیع ممتنع شو. وَبِهٖ یُقْضٰی حَقُّهُمْ حالانکه په بیع سره ددوی حق خلاصولې شي.

**تشریح:** او د مذکوره ماذونه وینځې آقا به ددې د قیمت تاوان ورکوی. ځکه چې د قرضخواهانو حق د وینځې ذات سره متعلق شوې وو. او هغوی دا خرڅولې شوه. او خپل حق ئې وصولولې شو. او کله چې آقا دې لره ام ولد جوړه کړه. نو استیفاء د حق متعذر شو. ځکه چې د ام ولد بیع صحیح نه ده. نو آقا د استیلاد په ذریعه د هغوی د حق محل ضائع کړو. نو د قیمت به ضامن وي.

قَالَ (وَاِذَا اسْتَدَانَتِ الْاَمَةُ الْمَاذُوْنُ لَهَا اَکْثَرَمِنْ قِیْمَتِهَا) که ماذونه وینځې د خپل قیمت نه زیات پور واخستلو. (فَدَبَّرَهَا الْمَوْلٰی) بیا آقا هغې لره مدبره جوړه کړله. (فَهِیَ مَاذُوْنٌ لَهَا عَلٰی حَالِهَا) لِاَنْعِدَامِ دَلَالَةِ الْحَجْرِ نو هغه

په پخپل حال باندې ماذونه پاتې وی.د حجر دلالت معدوم کيدو په وجه، إِذْ الْعَادَةُ مَا جَرَتْ بِتَحْصِينِ الْمُدَبَّرَةِ،ځکه چې د مدبره محفوظ ساتلو عادت جاری نه دې.وَلَا مُنَافَاةَ بَيْنَ حُكْمَيْهِمَا أَيْضًا،او د دواړو په حکم کې څه منافات هم نشته.وَالْمَوْلَى ضَامِنٌ لِقِيمَتِهَا او آقا به ددې د قیمت ضامن وی.لِمَا قَرَّرْنَاهُ فِي أُمِّ الْوَلَدِ هم هغه دليل سره کوم چې موږ ام ولد کې بیان کړې دې.

تشريح: که ماذونه وينځې د خپل قیمت نه زیات مال د پور په طور واخستلو.بیا آقا دا مدبره کړله.نو په مدبره کاوه سره به حجر نه ثابتيږي.بلکه هغه به پخپل حال باندې ماذونه پاتې وی.ځکه چې دلته د مجور کيدو دلالت نه دې.ځکه چې د مدبرې په پرده کې د ساتلو،او خلګو سره د میل ملاپ نه د محفوظ ساتلو عادت نه دې.بلکه رواج دا دې.چه خلګو سره ګډ وډ ( میل ملاپ دپاره) پریښودې شي.نو هغه تجارت کولې شي.او د اذن او تدبیر په حکم کې څه منافات هم نشته.ځکه د تدبیر حکم دا دې.چه فی الحال حق د آزادئ او فی المال حقیقت د آزادئ ثابتيږي.او حکم د اذن حجر لرې کول، او حق د آزادئ د حجر پورته کاوه مانع نه دې.بیا آقا به ددې مدبرې د قیمت ضامن وی.چه ددې دلیل د ام ولد په مسئله کې پورته تیر شوې دې.چه هغه داسې محل ضائع کړو.چه هغې سره د قرضخواهانو حق متعلق شوې دې.

## د عبد ماذون د محجور کولو نه روسته د اقرار حکم

قَالَ (وَإِذَا حُجِرَ عَلَى الْمَأْذُونِ لَهُ)کله چې آقا عبد ماذون محجور کړو.فَإِقْرَارُهُ جَائِزٌ فِيمَا فِي يَدِهِ مِنَ الْمَالِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)[1]نو دده اقرار جائز دې.په هغه مال کې کوم چې دده په قبضه کې دې.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نيز.وَمَعْنَاهُ أَنْ يُقِرَّ بِمَا فِي يَدِهِ أَنَّهُ أَمَانَةٌ لِغَيْرِهِ ددې معنى دا ده.چه اقرار اوکړی.د هغه مال په نسبت کوم چې دده سره دې.چه دا د غير امانت دې.أَوْ غَصْبٌ مِنْهُ یا دده نه غصب شوې دې.أَوْ يُقِرَّ بِدَيْنٍ عَلَيْهِ یا په خان باندې د پور اقرار اوکړی.فَيُقْضَى مِمَّا فِي يَدِهِ. چې دده د مقبوضه مال نه ادا کړې شي.

تشريح: عبد ماذون د محجور کيدو نه روسته اقرار اوکړو.چه ما سره کوم څه دی.هغه د فلانی امانت دې.یا مغصوب دې.یا زما په ذمه پور دې.

**د امام صاحب رحمه الله مسلک** ۞ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نيز دده اقرار استحساناً صحيح دې.نو هغه به پخپل مقبوضه مال سره دين وغيره ادا کوی.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللَّهُ:صاحبين رحمهما الله فرمائی.لَا يَجُوزُ إِقْرَارُهُ. چې دده اقرار جائز نه دې.لَهُمَا ددوی دلیل دا دې.أَنَّ الْمُصَحِّحَ لِإِقْرَارِهِ إِنْ كَانَ الْإِذْنَ چې دده اقرار صحيح کونکې امر که هم دا اجازت دې.فَقَدْ زَالَ بِالْحَجْرِ،نو د حجر په وجه هغه زائل شو.وَإِنْ كَانَ الْيَدَ او که قرضه وی.فَالْحَجْرُ أَبْطَلَهَا،نو حجر دا هم ختم کړو.لِأَنَّ يَدَ الْمَحْجُورِ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ ځکه چې د محجور قبضه معتبر نه وی.وَصَارَ كَمَا إِذَا أَخَذَ الْمَوْلَى كَسْبَهُ مِنْ يَدِهِ قَبْلَ إِقْرَارِهِ او دا داسې شوه.لکه چې آقا دده د اقرار نه وړاندې دده منافع دده د قبضې نه واخستل.أَوْ ثَبَتَ حَجْرُهُ بِالْبَيْعِ مِنْ غَيْرِهِ،یا داسې اوشوه.لکه چې دده حجر ثابت شوې وی.د بل په لاس د خرڅولو په وجه، وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ فِي حَقِّ الرَّقَبَةِ بَعْدَ الْحَجْرِ په دې وجه د حجر نه روسته د رقبة په حق کې دده اقرار نه صحيح کيږی.

تشريح: **د صاحبينو او ائمه ثلاثه رحمهم الله مسلک** ۞ دا دې.چه دده اقرار صحيح نه دې.د قياس تقاضه هم دا ده. دادې.چه اقرار صحيح کيدل،که د تجارت د اجازت په وجه وی.نو د حجر په وجه اجازت زائل شو.او که د قبضې په وجه وی.نو پخپلو منافعو چې د غلام کومه قبضه وه.هغه هم د حجر په وجه باطله شوه.ځکه چې د

[1]) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في ردالمحتار(۱۱۷\۵) والبحرالرائق (۱۷۸\۸) وملتقى الأبحر (۷۰\٤) ومجمع الأنهر(۷۰\٤) نقلاً عن القول الراجح (۲۵۵\۲)



محجور قبضه شرعا معتبر نه ده.نو اقرار به صحيح نه وی.او دا داسې شوه.لکه چې د مذکوره محجور د اقرار نه وړاندې آقا دده مقبوضه مال دده د قبضې نه اخستې وی.یا داسې شوه.لکه چې د اجازت په حالت کې آقا ده لره د بل په لاس خرڅ کړو.چه دې محجور شو.نو په دې دواړو صورتونو کې بالاتفاق دده اقرار نه صحيح کيږی.هم دا وجه ده.که دې د محجور کيدو نه روسته د مال اقرار اوکړی.نو دا دده د سټ په حق کې نه صحيح کيږی.یعنی بالاتفاق به هغه ددې مال لپاره نشي خرڅولې.

وَلَهُ د امام ابوحنیفه رحمه الله دليل دا دې.أَنَّ الْمُصَحِّحَ هُوَ الْيَدُ، چې اقرار صحيح کونکې هم قبضه ده.وَلِهَذَا لَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْمَأْذُونِ فِيمَا أَخَذَهُ الْمَوْلَى مِنْ يَدِهِ په دې وجه د ماذون اقرار نه صحيح کيږی.په هغه مال کې کوم چې آقا اخستې وی.دده د قبضې نه،وَالْيَدُ بَاقِيَةٌ حَقِيقَةً،او قبضه په حقيقت کې پاته ده.وَشَرْطُ بُطْلَانِهَا بِالْحَجْرِ حُكْمًا فَرَاغُهَا عَنْ حَاجَتِهِ،او د حجر په وجه حکماً د قبضې باطليدو شرط دده د اړتيا نه فارغ کيدل دی.وَإِقْرَارُهُ دَلِيلُ تَحَقُّقِهَا،او دده اقرار کول د حاجت متحقق کيدو دليل دې.

تشريح: د امام ابوحنیفه رحمه الله دليل ( او وجه د استحسان) دا دې.چه د اقرار د صحت مدار د قبضې په حقيقت دې.په دې وجه هغه مال کوم چې آقا دده.د اقرار نه مخکې دده د قبضې نه اوبنکلې وی.د هغه مال په نسبت دده اقرار نه صحيح کيږی.او بالفعل دده قبضه په حقيقت کې پاته ده.او د حجر په وجه حکماً ددې قبضې د باطليدو شرط دا دې.چه مال دده د اړتيا نه فارغ وی.او دده اقرار کول ددې خبرې دليل دې.چه دده اړتيا اوس هم پاته دی.

بِخِلَافِ مَا إِذَا انْتَزَعَهُ الْمَوْلَى مِنْ يَدِهِ قَبْلَ الْإِقْرَارِ،په خلاف ددې کله چې د اقرار نه وړاندې آقا دده د قبضې نه مال راوبنکلو.لِأَنَّ يَدَ الْمَوْلَى ثَابِتَةٌ حَقِيقَةً وَحُكْمًا ځکه چې د آقا قبضه ثابت ده.حقيقة هم او حکماً هم.فَلَا تُبْطَلُ بِإِقْرَارِهِ،نو دا قبضه به د غلام د اقرار په وجه نه باطليږی.وَكَذَا مِلْكُهُ ثَابِتٌ فِي رَقَبَتِهِ دغه ډول د آقا ملك هم دده په رقبه ( سټ) کې ثابت دې.فَلَا يَبْطُلُ بِإِقْرَارِهِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ، نو دده د رضا نه بغير د غلام په اقرار سره به نه باطليږی.

تشريح: د صاحبينو رحمهما الله د استشهاد ﴿و صار كما إذا أخذ المولى كسبه من يده قبل إقراره﴾ ځواب دې چه په خلاف د دې کله چې آقا دده د اقرار نه مخکې مال دده د قبضې نه اوبنکلې وی.چه دده اقرار ځکه نه صحيح کيږی چه د آقا قبضه موجود ده.حقيقتاً هم،او حکماً هم.نو د آقا دا قبضه به د غلام د اقرار په وجه نه باطليږی .دغه ډول د غلام په رقبه کې د آقا ملکيت هم ثابت دې.نو د آقا د مرضئ نه بغير به ملك دده د اقرار په وجه نه باطليږی.

وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ،او دا ددې خلاف دې.کله چې آقا غلام خرڅ کړو.لِأَنَّ الْعَبْدَ قَدْ تَبَدَّلَ بِتَبَدُّلِ الْمِلْكِ عَلَى مَا عُرِفَ ځکه چې ملك بدليدو سره غلام هم بدل شو.فَلَا يَبْقَى مَا ثَبَتَ بِحُكْمِ الْمِلْكِ،نو کوم شئ چې په حکم د ملك ثابت وو.هغه به پاته نه پاتې کيږی.وَلِهَذَا لَمْ يَكُنْ خَصْمًا فِيمَا بَاشَرَهُ قَبْلَ الْبَيْعِ په دې وجه غلام مدعى عليه نشي کيدې.په هغه تصرف کې کوم چې ده د بيع نه مخکې کړې وی.

تشريح:د صاحبينو رحمهما الله د دوهم استشهاد ﴿أو ثبت حجره بالبيع من غيره﴾ ځواب دې.چه په خلاف د داسې صورت، چې آقا دا غلام د بل چا په لاس خرڅ کړو.چه ددې مال په نسبت د غلام اقرار ځکه نه صحيح کيږی.چه د بيع په وجه د ملك بدليدو په بناء باندې غلام هم بدل شو.نو د ملك حکمی په وجه چې کوم شئ غلام لپاره ثابت وو.هغه به پاته پاتې وی.یعنی د آقا د اجازت په وجه چې ده ته دده په مال باندې قبضه حاصله وه.هغه اوس د ملك بدليدو په وجه پاته پاتې نشوه.نو دده اقرار به صحيح نه وی.هم دا وجه ده. که غلام د خرڅيدو نه وړاندې د اخستلو او خرڅولو تصرف کړې وی.نو هغه د خرڅيدو نه روسته به دې اړه کې خصم نشي جوړيدې.مثلاً ده څه شئ خرڅ کړو.بیا آقا ده لره خرڅ کړو.نو د مبيع سپارلو مطالبه ددې غلام نه

نشي کېدې.خکه چې هغه د خرڅېدو په وجه په مرتبه د دوهم غلام شو.

## په عبد ماذون باندې د قرضو حکم

قَالَ (وَإِذَا لَزِمَتْهُ دُيُونٌ تُحِيطُ بِمَالِهِ وَرَقَبَتِهِ) کله چې لازم شی په ده باندې داسې پور چې هغه راګير کړی.دده مال او سټ،(لَمْ يَمْلِكِ الْمَوْلَى مَا فِي يَدِهِ) نو مالك به نه وي آقا، د هغې کوم چې اوس دده په قبضه کې دی.(وَلَوْ أَعْتَقَ مِنْ كَسْبِهِ عَبْدًا) اوکه آقا دده مزدورئ کوم غلام آزاد کړو.(لَمْ يَعْتِقْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)[1] نو آزاد به نه وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز.(وَقَالَا:) صاحبين رحمهما الله فرمائي.(يَمْلِكُ مَا فِي يَدِهِ) چې آقا به مالك وي.دده د مقبوضه (وَيَعْتِقُ وَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ) او آزادېږي به هم،او په آقا به ددې قيمت واجب وي.

تشريح: په عبد ماذون باندې دومره پور را واوړی.چه هغه دده مال او دده سټ راګير کړی.نو په داسې صورت کې چې کوم مال دده سره وي.خپلې ماذونه وينځې سره وطی اوکړی.چه دا د کمال (او پوره) ملك دليل دی.خکه چې وطی او آزادول په کامل ملك کې کيږی.

لِأَنَّهُ وُجِدَ سَبَبُ الْمِلْكِ فِي كَسْبِهِ.خکه چې د ملك سبب د ماذون په مزدورئ (ګټه) کې اوموندې شو.وَهُوَ مِلْكُ رَقَبَتِهِ او هغه ملك د رقبې دي.وَلِهَذَا يَمْلِكُ إِعْتَاقَهَا، وَوَطْءَ الْجَارِيَةِ الْمَأْذُونِ لَهَا.په دې وجه آقا د عبد ماذون د آزادولو، او ماذونه وينځې سره د وطی کاوه مالك کيږي.وَهَذَا آيَةُ كَمَالِهِ.او دا د کمال ملك دليل دی.

تشريح: د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دی.چه د عبد ماذون مزدورئ کې د آقا د ملك سبب اوموندې شو.او هغه دا چې آقا دده د رقبې (سټ) مالك دی.په دې وجه آقا ته دا اختيار وي.چه خپل عبد ماذون آزاد کړی.او دا دی.که د مورث (ميت) قرضه محيط وی.نو وارث ته د ترکې د غلام آزادولو اختيار خکه نه وی.چه د وارث ملك د مورث د بهترئ په لحاظ سره دې.او ترکه باندې د پور د محيط کېدو په صورت کې د مورث بهتری هم په دې کې ده.چه غلام آزاد نشی.پاتې شو ملك د آقا، نو هغه د عبد ماذون د بهترئ په لحاظ نه دې.تردې چې دا لازم شی.چه دده بهتری هم په دې کې ده.چه د پور ادا کاوه پورې اعتاق جائز نه وی.بلکه د آقا ملك خو په خپله حاصل دې.

بِخِلَافِ الْوَارِثِ.په خلاف د وارث.لِأَنَّهُ يَثْبُتُ الْمِلْكُ لَهُ نَظَرًا لِلْمُوَرِّثِ.خکه چې دده لپاره د ملك ثبوت د مورث د بهترئ په لحاظ سره دي.وَالنَّظَرُ فِي ضِدِّهِ عِنْدَ إِحَاطَةِ الدَّيْنِ بِتَرِكَتِهِ.او په ترکه (مال ميراث) باندې د پور د محيط (چاپيره) کيدو په وخت بهتری (او فائده) ددې په خلاف کې ده.أَمَّا مِلْكُ الْمَوْلَى پاتې شو د آقا ملك، فَمَا ثَبَتَ نَظَرًا لِلْعَبْدِ.نو هغه د عبد ماذون د بهترئ په لحاظ سره نه دې ثابت شوې.

تشريح: دا سوال خواب دې.سوال دا دی.چه د عبد ماذون په منافعو کې سبب د ملك موجود کيدل منو.خو مانع موجود دې.يعنی د پور محيط کيدل،چه دا د اعتاق نه مانع دې.لکه څنګه چې ترکه کې کيږی.که ترکه ته پور محيط وی.نو د وارث اعتاق نه صحيح کيږی ؟

وَلَهُ امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دی.أَنَّ مِلْكَ الْمَوْلَى إِنَّمَا يَثْبُتُ خِلَافَةً عَنِ الْعَبْدِ عِنْدَ فَرَاغِهِ عَنْ حَاجَتِهِ كَمِلْكِ الْوَارِثِ عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ چې د آقا ملك د غلام په نيابت کې هغه وخت ثابتيږی.چه د غلام د اړتيا نه فارغ وی.لکه ملك د وارث.وَالْمُحِيطُ بِهِ الدَّيْنُ بوخت بِهَا او په کوم مال چې قرضه محيط ده.هغه د غلام په اړتيا کې بوخت دې.فَلَا يَخْلُفُهُ فِيهِ.نو آقا به په دې کې نائب نشی کيدې.وَإِذَا عُرِفَ ثُبُوتُ الْمِلْكِ وَعَدَمُهُ او هرکله چې د ملك ثبوت او عدم ثبوت معلوم شو.فَالْعِتْقُ فَرْعُهُ.نو عتق ددې فرع ده.وَإِذَا نَفَذَ عِنْدَهُمَا او کله چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز عتق نافذ

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (۳۶۸/۱۳) والكفاية (۲۳۰/۸) والبحرالرائق (۱۴۰/۸) وكنز (۳۴۱) والدرالمختار(۱۱۷/۵) نقلاً عن القول الراجح (۲۵۶/۲)



شو.يَضْمَنُ قِيمَتَهُ لِلْغُرَمَاءِ نو آقا به ضامن وی.ددې د قيمت د قرضخواهانو دپاره.لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِهِ.ددې سره ددوی د حق متعلق کيدو په وجه،

تشريح: د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چه آقا د خپل سوداګر غلام د منافعو مالك په طريقه د نيابت هغه وخت جوړيږی.کله چې دا منافع د غلام د اړتيا نه فارغ وی.او کوم مال چې قرضو راګير کړې وی.هغه دده په اړتيا کې بوخت دې.نو آقا به په دې مال کې خليفه نه وی.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه هرکله د غلام په منافعو کې د آقا ملك ثابتيدل (د صاحبينو رحمهما الله په نيز) او ددې نه ثابتيدل (د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز) معلوم شو.نو آزادول ددې فرع ده.يعنی هرکله چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په ملك ثابت نه دې.نو آزادی به هم نه ثابتيږی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز چې هرکله ملك ثابت دې.نو د عبد ماذون د منافعو غلام آزادول به هم صحيح وی.او هرکله چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز د آقا اعتاق (آزادول) نافذ شو.نو آقا به د قرضخواهانو لپاره د قيمت ضامن وی.خکه چې دده سره د قرضخواهانو حق متعلق شوی دی.

قَالَ (وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الدَّيْنُ مُحِيطًا بِمَالِهِ) او که قرضه دده مال نه راګيره وی.(جَازَ عِتْقُهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا) نو د آقا آزادول جائز دی.د ټولو په قول کې، أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو ښکاره دي.وَكَذَا عِنْدَهُ او هم دغه رنګ د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم، لِأَنَّهُ لَا يَعْرَى عَنْ قَلِيلِهِ.خکه چې معمولی مال د پور نه خالی نه وی.فَلَوْ جُعِلَ مَانِعًا که دا هم مانع اوګرځولې شی.لَانْسَدَّ بَابُ الِانْتِفَاعِ بِكَسْبِهِ نو د ماذون د منافعو نه د فائدې اخستلو دروازه بنده شی.فَيَخْتَلُّ مَا هُوَ الْمَقْصُودُ مِنَ الْإِذْنِ او د اجازت نه مقصد کې به خلل پيدا شی.وَلِهَذَا لَا يَمْنَعُ مِلْكَ الْوَارِثِ په دې وجه معمولی قرضه د وارث د ملك نه مانع نشی جوړيدې.وَالْمُسْتَغْرِقُ يَمْنَعُهُ او محيط قرضه مانع کيدای شی.

تشريح: اوکه د عبد ماذون قرضه دده مال او دده ذات ته محيط نه وی.نو د آقا د عبد ماذون غلام آزادول بالاتفاق صحيح دی.د صاحبينو رحمهما الله په نيز خو ښکاره دی.او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خکه چې جائز دی.چه د معمولی پور نه خالی نه وی.که داسې قرضه هم مانع اوګرځولې شی.نو د عبد ماذون منافعو څخه به د آقا د نفعې اوچتولو دروازه بنده شی.او د اجازت ورکولو چې کوم مقصد دې.هغه به نه حاصليږی.په دې وجه معمولی قرضه د وراث د ملك نه مانع نه جوړيږی.او محيط قرضه مانع د ملك جوړيږی.

## د محابات (يعنی په کم قيمت د ورکولو) مسئلې

قَالَ (وَإِذَا بَاعَ مِنَ الْمَوْلَى شَيْئًا بِمِثْلِ قِيمَتِهِ) که خرڅ کړو ماذون د آقا په لاس څه څيز،ددې د برابر قيمت باندې،(جَازَ) نو جائز دی.لِأَنَّهُ كَالْأَجْنَبِيِّ عَنْ كَسْبِهِ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ خکه چې آقا دده د منافعو نه پشان د اجنبی دې.کله چې ماذون باندې دومره قرضه وی.يُحِيطُ بِكَسْبِهِ چې هغه دده په منافعو باندې محيط وی.(وَإِنْ بَاعَهُ بِنُقْصَانٍ) اوکه په نقصان ئې خرڅ کړو.(لَمْ يَجُزْ مُطْلَقًا) نو جائز نه ده.لِأَنَّهُ مُتَّهَمٌ فِي حَقِّهِ.خکه چې دا د آقا په حق کې متهم دې.بِخِلَافِ مَا إِذَا حَابَى الْأَجْنَبِيَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ په خلاف ددې کله چې ده اجنبی سره محابات اوکړو (چې قيمتی شئ ئې په کم قيمت ورکړو) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز.لِأَنَّهُ لَا تُهْمَةَ فِيهِ خکه چې دې کې هيڅ تهمت نشته.

تشريح: که عبد ماذون د خپل آقا په لاس په برابر قيمت سره څه شئ خرڅ کړی.نو جائز دی.خو دا هغه وخت دی.کله چې غلام قرضدار وی.چه دغه وخت دده آقا دده په مزدورئ کې پشان د اجنبی وی.اوکه هغه قرضدار نه وی.نو بيا به په دوی دواړو کې اخستل او خرڅول نه وی.خکه چې غلام او کوم څه چې دده سره دی.هغه واړه دده د آقا دی.اوکه عبد ماذون د خپل آقا په لاس نقصان سره خرڅ کړی.نو دا جائز نه دی.خکه چې دې حق کې د تهمت امکان دې.

**فائده:** کله چې په قیمت کې دومره کمې وی، چه هغه د ټولو اندازه لګونکو د اندازې نه کم وی. مثلا د یو شئ قیمت بعض اندازه لګونکی لس روپۍ او بعض نهه روپۍ اندازه لګوی. نو نهه روپۍ پورې تاوان کول کم او معمولی دی. او د نهو نه کمول زیات تاوان دی.

**وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الْمَرِيضُ مِنَ الْوَارِثِ بِمِثْلِ قِيمَتِهِ** او په خلاف ددې کله چې مریض د وارث په لاس په برابر قیمت باندې خرڅ کړو. **حَيْثُ لَا يَجُوزُ عِنْدَهُ** چې دا جائز نه دی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. **لِأَنَّ حَقَّ بَقِيَّةِ الْوَرَثَةِ تَعَلَّقَ بِعَيْنِهِ** خکه چې د پاتې وارثانو حق عین شئ سره متعلق شوې دې. **حَتَّى كَانَ لِأَحَدِهِمُ الِاسْتِخْلَاصُ بِأَدَاءِ قِيمَتِهِ.** تردې چې د هر وارث حق دې، ددې د خلاصولو، په ادا کاوه د قیمت ددې سره، **أَمَّا حَقُّ الْغُرَمَاءِ** باقی شو قرضخواه **تَعَلَّقَ بِالْمَالِيَّةِ** نو د هغوی حق خو صرف مالیت سره متعلق دې. **لَا غَيْرُ فَافْتَرَقَا** دې بل څیز سره نو دواړه جدا شول

**تشریح:** قیمت کې کمی سره خرڅولو ته محابات وائی. نو که آقا سره ئې محابات اوکړو. نو دا جائز نه دی. لکه څنګه چې پورته ذکر شوی. او ددې په خلاف که ده یو اجنبی سره محابات اوکړو. نو دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز دی. څکه چې دې کې هیڅ تهمت نشته. او په خلاف ددې کله چې مریض د خپل وارث په لاس څه شئ په برابر قیمت سره خرڅ کړو. نو دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز نه دی. څکه چې د پاتې وارثانو حق ددې شئ د ذات سره متعلق شوې دې. تردې که په مریض باندې قرضه وی. نو هر وارث ته دا اختیار دې چه ددې قیمت ادا کړی. او دا لنډیز کړی. په خلاف د ماذون، چې د ماذون په صورت کې د قرضخواهانو حق صرف مالیت سره متعلق کیږی. عین شئ سره نه متعلق کیږی. نو د وارث په لاس د قرضدار مریض بیع، او د آقا په لاس د قرضدار ماذون بیع کې توپیر ښکاره شو.

### د صاحبینو رحمهما الله نقطه نظر

**وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ:** صاحبین رحمهما الله فرمائی. **إِنْ بَاعَهُ بِنُقْصَانٍ** که په نقصان ئې خرڅ کړو. **يَجُوزُ الْبَيْعُ** بیا هم بیع جائز ده. **وَيُخَيَّرُ الْمَوْلَى إِنْ شَاءَ أَزَالَ الْمُحَابَاةَ** او آقا ته به اختیار ورکولې شی. که غواړی. محابات دې زائل کړی. **وَإِنْ شَاءَ نَقَضَ الْبَيْعَ** که غواړی. بیع دې ماته کړی.

**تشریح:** صاحبین رحمهما الله فرمائی. که عبد ماذون د خپل آقا په لاس کم قیمت باندې خرڅ کړو. نو دا هم جائز ده. اوس به آقا ته اختیار ورکولې شی. که غواړی محابات دې زائل کړی. او که غواړی. بیع دې ماته کړی. او بعضو مشائخو وئیلی دی. صحیح دا ده. چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز هم دا حکم دی.

**وَعَلَى الْمَذْهَبَيْنِ الْيَسِيرُ مِنَ الْمُحَابَاةِ وَالْفَاحِشُ سَوَاءٌ.** او په دواړو مذهبونو باندې کم او زیات محابات برابر دی. **وَوَجْهُهُ ذَلِكَ أَنَّ الِامْتِنَاعَ لِدَفْعِ الضَّرَرِ عَنِ الْغُرَمَاءِ** او ددې وجه دا ده. چه د بیع امتناع د قرضخواهانو نه د ضرر لرې کاوه لپاره دی. **وَبِهَذَا يَنْدَفِعُ الضَّرَرُ عَنْهُمْ** او ددوی څخه به ضرر په دغه ډول لرې کیږی.

**تشریح:** بیا د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله په نیز که محابات معمولی وی او که زیات وی. دواړه برابر دی. یعنی بیع به نه نافذ کیږی. تر کومه پورې چې محابات لرې نشی. یا به جائز نه وی. وجه ددې دا ده. چه نقصان سره د بیع امتناع د قرضخواهانو د حق په وجه ده. چه ددوی نه ضرر لرې شی. او په مذکوره اختیار سره ددوی ضرر لرې کیدای شی.

**وَهَذَا بِخِلَافِ الْبَيْعِ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ بِالْمُحَابَاةِ الْيَسِيرَةِ** او دا د اجنبی په لاس په معمولی محاباتو باندې د خرڅولو خلاف دې. **حَيْثُ يَجُوزُ** چې دا جائز دې. **وَلَا يُؤْمَرُ بِإِزَالَةِ الْمُحَابَاةِ** او اجنبی ته د محابات لرې کاوه حکم نشی ورکولې. **وَالْمَوْلَى يُؤْمَرُ بِهِ** او آقا ته ددې حکم ورکولې شی. **لِأَنَّ الْبَيْعَ بِالْيَسِيرِ مِنْهَا مُتَرَدِّدٌ بَيْنَ التَّبَرُّعِ وَالْبَيْعِ لِدُخُولِهِ تَحْتَ تَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ** څکه چې معمولی محابات سره خرڅول متردد دی په تبرع او بیع کیدو کې، ددې کموالی د داخلیدو په



وجه، داندازه کونکو د اندازې لاندې، **فَاعْتَبَرْنَاهُ تَبَرُّعًا فِي الْبَيْعِ مَعَ الْمَوْلَى لِلتُّهْمَةِ** نو موږ د دې د تبرع اعتبار اوکړو. د آقا په لاس خرڅولو کې، د تهمت په وجه. **وَغَيْرَ تَبَرُّعٍ فِي حَقِّ الْأَجْنَبِيِّ لِانْعِدَامِهَا** او د اجنبی په حق کې د غیر تبرع (اعتبار مو اوکړو). د تهمت نه کیدو په وجه.

**تشریح:** د جواز او د اختیار مذکوره حکم ددې صورت په خلاف دې کله چې قرضدار عبد ماذون د یو اجنبی (غیر آقا) په لاس معمولی محابات سره بیع کړې وی چه دا بیع جائز ده. او اجنبی ته به دا حکم نشی ورکولې. چه هغه محابات لرې کړی. حالانکه آقا ته د محابات لرې کاوه حکم ورکولې شی. ددې وجه دا ده. چه معمولی محابات سره کوم عقد د آقا په لاس شوې دې. هغه په تبرع (احسان) او بیع کیدو کې متردد دې. تبرع کیدل په دې لحاظ سره دی. چه په مقدار د محابات کې عقد بیع د ثمن نه خالی دې. او بیع په دې اعتبار سره ده. چه دا کمی د اندازه کونکو په اندازه کې داخل ده. نو موږ د دواړو اعتبارونو لحاظ اوساتلو. که قرضدار عبد ماذون کله داسې بیع د خپل آقا په لاس اوکړله. نو د تهمت په وجه موږ دا تبرع اعتبار کړله. او کله چې ده داسې بیع د اجنبی (غیر آقا) په لاس اوکړله. نو د تهمت نه کیدو په وجه موږ دا بیع اعتبار کړله.

**وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ مِنَ الْأَجْنَبِيِّ بِالْكَثِيرِ مِنَ الْمُحَابَاةِ** او په خلاف ددې کله چې د اجنبی په لاس په فاحش (زیات) محابات باندې خرڅ کړو. **حَيْثُ لَا يَجُوزُ أَصْلًا عِنْدَهُمَا** چې دا د صاحبینو رحمهما الله په نیز بالکل جائز نه دی. **وَمِنَ الْمَوْلَى يَجُوزُ** او د آقا په لاس جائز دی. **وَيُؤْمَرُ بِإِزَالَةِ الْمُحَابَاةِ** خو د محابات د ازالې حکم به کولې شی. **لِأَنَّ الْمُحَابَاةَ لَا تَجُوزُ مِنَ الْعَبْدِ الْمَأْذُونِ عَلَى أَصْلِهِمَا إِلَّا بِإِذْنِ الْمَوْلَى** څکه چې د صاحبینو رحمهما الله په اصول باندې د عبد ماذون د اړخه محابات کول جائز نه دی. خو د آقا په اجازت سره. **وَلَا إِذْنَ فِي الْبَيْعِ مَعَ الْأَجْنَبِيِّ** او اجنبی سره په بیع کاوه کې اجازت نشته. **وَهُوَ إِذْنٌ بِمُبَاشَرَتِهِ بِنَفْسِهِ** او آقا پخپله د بیع کاوه په ذریعه اجازت ورکونکې دې. **غَيْرَ أَنَّ إِزَالَةَ الْمُحَابَاةِ لِحَقِّ الْغُرَمَاءِ** صرف دومره خبره ده. چه د محابات ازاله د قرضخواهانو د حق په وجه ده.

**تشریح:** مذکوره حکم په معمولی محابات کې دې. او که قرضدار عبد ماذون د اجنبی په لاس فاحش (زیات) محابات سره بیع اوکړله. نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز به دا بالکل جائز نه وی. او د آقا په لاس به جائز وی. خو دا حکم به ورکولې شی. چه هغه محابات لرې کړی. څکه د صاحبینو رحمهما الله په نیز اصول دا دې. چه د عبد ماذون د اړخه محابات کول جائز نه دی. خو کله چې د آقا اجازت وی. او اجنبی سره محابات کاوه کې دا اجازت مفقود (غیرموجود) دې. او آقا سره محابات کاوه کې اجازت موجود دې. څکه چې د آقا پخپله دا عمل کول اجازت ورکول دی. صرف دومره خبره ده. چه د قرضخواهانو د حق په وجه به آقا ته د محابات لرې کاوه حکم ورکولې شی.

**وَهَذَانِ الْفَرْقَانِ عَلَى أَصْلِهِمَا** دا دواړه فرقونه د صاحبینو رحمهما الله په اصول باندې دی.

**تشریح:** په بعضو نسخو کې ﴿و هذان الفرقان﴾ په لفظ د افراد دې. په ړومبی صورت کې لفظ د ،، فرقان ،، په نون مکسوره سره دې. څکه چې دا د تثنیه نون دې. او په دوهم صورت کې نون مرفوع دې. او فرقان په ضمې د فاء سره په مثل د ،، غفران ،، په معنی د توپیر دې. صاحب د نهایه رحمه الله فرمائی. چه ﴿هذان الفرقان﴾ زیات صحیح دې. څکه چې د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې دا دواړه فرقونه موجود دی. او په صحیح نسخو کې هم دا ثابت دی. بیا علامه مرغینانی رحمه الله ﴿علی أصلهما﴾ څکه اووئیل. چه کله امام ابوحنیفه رحمه الله د آقا په لاس بیع د سره جائز او نه ساتله. نه په معمولی تاوان، او نه په زیات تاوان سره، نو ددوی د قول لپاره ددې دواړو فرقونو حاجت نشته. بلکه صرف د یو توپیر اړتیا دې. او هغه زیات تاوان سره د اجنبی په لاس بیع جائز کیدل، او د آقا په لاس نه جائز کیدل دی.

❶ د قول مطلب دا دې. چه د معمولی محابات په صورت کې د آقا او اجنبی په منځ کې توپیر دا دې. چه آقا

ته به د محاباتِ لږې كاوه حكم وركولې شي. او د اجنبي په صورت كي به اجنبي ته حكم نشي وركولې. او بالكل ښكاره توپير او د فاحش محابات په صورت كي به آقا ته د محاباتُ د ازالي حكم وركولې شي. او كه فاحش محابات اجنبي سره وي. نو داسې بيع به د سره جائز هم نه وي. او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز آقا سره د معمولي محابات بيع ناجائز ده. پاتې شو فاحش محابات، نو كه دا د آقا سره وي. نو دا هم ناجائز دي. او كه اجنبي سره وي. نو جائز دي. خو د محاباتِ لږې كاوه حكم به وركولې شي.

**د آقا د خپل عبد ماذون غلام په لاس د بيع حكم**

قَالَ (وَإِنْ بَاعَهُ الْمَوْلَى شَيْئًا بِمِثْلِ الْقِيمَةِ أَوْ أَقَلَّ) او كه آقا د ماذون په لاس برابر قيمت باندې يا په كم باندې څه شي خرڅ كړو (جَازَ الْبَيْعُ) نو جائز دي. لِأَنَّ الْمَوْلَى أَجْنَبِيٌّ عَنْ كَسْبِهِ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ خكه چې دده منافع د اجنبي پشان دي. كله چې ماذون باندې قرضه وي. عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ وَلَا تُهْمَةَ فِي هَذَا الْبَيْعِ او دده سره په بيع كي هيڅ تهمت نشته. وَلِأَنَّهُ مُفِيدٌ او گټور هم ده. فَإِنَّهُ يَدْخُلُ فِي كَسْبِ الْعَبْدِ مَا لَمْ يَكُنْ فِيهِ خكه چې د غلام په منافعو كي به هغه شي راشي. كوم چې نه وو. وَيَتَمَكَّنُ الْمَوْلَى مِنْ أَخْذِ الثَّمَنِ او آقا ته به د ثمن اخستلو قابو (او قدرت) ملاؤ شي. بَعْدَ أَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ هَذَا التَّمَكُّنُ حالانكه ددې نه وړاندې هغه ته دا قابو حاصل نه وو. وَصِحَّةُ التَّصَرُّفِ تَتْبَعُ الْفَائِدَةَ او د تصرف صحت د فائدې شاته لګيدلې دي.

**تشريح:** كه آقا د خپل ماذون غلام په لاس څه شي په پوره قيمت سره يا په نقصان خرڅ كړي. نو دا بالاجماع جائز دي. خكه چې هركله په غلام قرضه ده. نو آقا دده د منافعو نه اجنبي دي. او په دې بيع كي هيڅ تهمت نشته. او په دې كې فائده هم ده. خكه چې د غلام په منافعو كي به يو داسې شي راشي. كوم چې مخكې نه وو. نو د قرضخواهانو به هيڅ نقصان نه وي. بيا آقا ددې نه وړاندې دده د منافعو نه ثمن نشي اخستلې. او اوس به هغه ته دا اختيار حاصل شي.

(وَإِنْ سَلَّمَ الْمَبِيعَ إِلَيْهِ قَبْلَ قَبْضِ الثَّمَنِ) بيا كه آقا مبيع هغه ته اوسپارلو. د ثمن وصولولو نه مخكې، (بَطَلَ الثَّمَنُ) نو ثمن به باطل وي. لِأَنَّ حَقَّ الْمَوْلَى فِي الْعَيْنِ مِنْ حَيْثُ الْحَبْسُ، خكه چې د آقا حق په عين شي كي په حيثيت د حبس (منع كولو) دي. فَلَوْ بَقِيَ بَعْدَ سُقُوطِهِ اوس كه د حبس ساقطيدو نه روسته هم د آقا حق پاتې شي. يَبْقَى فِي الدَّيْنِ نو په دين كي به پاتې وي. وَلَا يَسْتَوْجِبُهُ الْمَوْلَى عَلَى عَبْدِهِ، حالانكه آقا پخپل غلام باندې مستوجب د دين نه وي. بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الثَّمَنُ عَرَضًا په خلاف ددې كله چې ثمن څه سامان وي. لِأَنَّهُ يَتَعَيَّنُ خكه چې دا متعين دي. وَجَازَ أَنْ يَبْقَى حَقُّهُ مُتَعَلِّقًا بِالْعَيْنِ. او مال عين سره د آقا حق متعلق كيدل جائز دي.

**تشريح:** اوس كه آقا په ثمن باندې د قبضه كاوه نه وړاندې مبيع هغه ته حواله كړو. نو هغه ثمن به ضائع شي. خكه چې د بيع نه روسته آقا د خپل قيمت وصولولو پورې مبيع منع كولې (او خان سره ساتلې) شي. اوس كه د منع كاوه حق ساقطيدو نه روسته هم د آقا حق پاتِه پاتې شي. نو په دې مال عين كي به نه وي. بلكه دين يعني دهغې په ثمن كي به وي. حالانكه آقا ته دا حق نشته. چه پخپل غلام باندې قرضه واجب كړي. په خلاف ددې كه ثمن هم څه معين سامان وي. نو آقا ددې مبيع د سپارلو نه روسته هم دا وصولولې شي. خكه چې دا مال متعين دي. او مال متعين سره د آقا حق متعلق پاتې كيدل جائز دي. بيا د ثمن د بطلان مطلب دا دي. چه اوس آقا ددې مطالبه نشي كولې. البته بيع واپس كولې شي.

قَالَ (وَإِنْ أَمْسَكَهُ فِي يَدِهِ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ جَازَ) او كه آقا دا د خپل خان سره منع كړو. تردې چې ثمن وصول كړي. نو دا جائز دي. لِأَنَّ الْبَائِعَ لَهُ حَقُّ الْحَبْسِ فِي الْمَبِيعِ خكه چې بائع ته د مبيع منع كاوه حق وي. وَلِهَذَا كَانَ أَخَصَّ بِهِ مِنَ الْغُرَمَاءِ په دې وجه هغه د نورو قرضخواهانو نه ددې مبيع زيات حقدار وي. وَجَازَ أَنْ يَكُونَ لِلْمَوْلَى حَقٌّ فِي الدَّيْنِ إِذَا كَانَ يَتَعَلَّقُ بِالْعَيْنِ او دا جائز دي. چه آقا لپاره دين كي حق وي. كله چې دا دين د



يو مال عين سره متعلق وي. (وَلَوْ بَاعَهُ بِأَكْثَرَ مِنْ قِيمَتِهِ) او كه آقا د ماذون په لاس ددې د قيمت نه په زيات باندې خرڅ كړو. (يُؤْمَرُ بِإِزَالَةِ الْمُحَابَاةِ) نو حكم به وركولې شي. د لږې كاوه د محابات، (أَوْ بِنَقْضِ الْبَيْعِ) يا دې دا بيع ماته كړي. لكه څنګه چې مونږ په اړخ د عبد كي بيان كړي دي. كَمَا بَيَّنَّا فِي جَانِبِ الْعَبْدِ، لِأَنَّ الزِّيَادَةَ تَعَلَّقَ بِهَا حَقُّ الْغُرَمَاءِ خكه چې دې زياتوالي سره د قرضخواهانو حق متعلق دي.

**تشريح:** مطلب د ترجمې نه ښكاره دي.

قَالَ (وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى الْمَأْذُونَ) كه آزاد كړو آقا ماذون لره، (وَعَلَيْهِ دُيُونٌ) حالانكه دده په ذمه پور دي. (فَعِتْقُهُ جَائِزٌ) نو دده آزادول جائز دي. لِأَنَّ مِلْكَهُ فِيهِ بَاقٍ خكه چې ده كي د آقا ملك پاته دي. وَالْمَوْلَى ضَامِنٌ لِقِيمَتِهِ لِلْغُرَمَاءِ او آقا به ضامن وي. دده د قيمت، قرضخواهانو دپاره. لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُمْ خكه چې ده داسې شي هلاك كړو. چه هغې سره ددوى حق متعلق وو. بَيْعًا وَاسْتِيفَاءً مِنْ ثَمَنِهِ په داسې شان چې هغه به ئې خرڅ كړې وو. او وصول كړې به ئې وو (خپل قرض) د هغه د ثمن نه. (وَمَا بَقِيَ مِنَ الدُّيُونِ يُطَالَبُ بِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ) او كوم څه چې پاته پاتې شي. په قرضونو كي، د هغې مطالبه به د آزادۍ نه روسته كيږي. لِأَنَّ الدَّيْنَ فِي ذِمَّتِهِ خكه چې قرضه دده په ذمه ده. وَمَا لَزِمَ الْمَوْلَى إِلَّا بِقَدْرِ مَا أَتْلَفَ ضَمَانًا او د آقا په ذمه د ضمان په طور دومره لازم وو. څومره چې هغه هلاك كړې دي. فَبَقِيَ الْبَاقِي عَلَيْهِ كَمَا كَانَ نو پاته قرضه چې په ماذون څنګه وه. هم هغه شان به وي.

**تشريح:** آقا خپل ماذون قرضدار غلام آزادولې شي. چه په دې كي هيڅ اختلاف نشته. خكه چې په ده كي د آقا ملك پاته دي. (اختلاف خو دده په منافعو كي دي. كله چې په ده باندې پور محيط وي). اوس د آزدولو په صورت كي به آقا دده قرضخواهانو ته د غلام د قيمت تاوان وركوي. خكه چې د هغوى حق دده د ذات سره متعلق دي. او آقا هغه لره آزاد كړو. او كه د پور ادا كاوه لپاره قيمت كافي نه وي. نو د پاته پور مطالبه به د غلام نه دده د آزادۍ نه روسته كولې شي. خكه چې قرضه دده په ذمه پاته ده. او د آقا په ذمه د ضمان په طور صرف هم دومره لازم دي. څومره چې ده هلاك كړې دي.

(فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ) بيا كه قرضه د غلام د قيمت نه كمه وي. (ضَمِنَ الدَّيْنَ لَا غَيْرُ) نو آقا به صرف د پور ضامن وي. لِأَنَّ حَقَّهُمْ بِقَدْرِهِ خكه چې د قرضخواهانو حق صرف هم دومره دي. بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَ الْمُدَبَّرَ وَأُمَّ الْوَلَدِ الْمَأْذُونَ لَهُمَا په خلاف ددې كله چې مدبر ماذون يا ام ولد ماذونه آزاد كړي. وَقَدْ رَكِبَتْهُمَا دُيُونٌ حالانكه په دوى باندې پور اوختې دي. لِأَنَّ حَقَّ الْغُرَمَاءِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِرَقَبَتِهِمَا اسْتِيفَاءً بِالْبَيْعِ خكه چې د قرضخواهانو حق ددوى سټ سره په داسې طريقه نه دي متعلق شوې. چه دوى خرڅ كړي. او وصول كړي. فَلَمْ يَكُنِ الْمَوْلَى مُتْلِفًا حَقَّهُمْ نو آقا ددوى حق ضائع كونكې نشو. فَلَمْ يَضْمَنْ شَيْئًا نو د هيڅ شي به ضامن نه وي.

**تشريح:** بيا كه د پور مقدار ددې غلام د قيمت نه كم وي. نو آقا به صرف د پور ضامن وي. ددې نه د زيات به ضامن نه وي. خكه چې د قرضخواهانو حق صرف د پور مقداره پورې دي. ددې په خلاف ئې كه خپل مدبر ماذون يا ام ولد ماذونه آزاده كړله. چه په هغه باندې پور ختلې دي. نو ضامن به نه وي. خكه چې د قرضخواهانو حق ددوى د ذات سره په داسې طور نه دې متعلق شوې. چه هغه دوى خرڅ كړي. او وصول كړي. خكه چې مدبر او ام ولد د يو ملك نه بل ملك اړخ ته نه نشي منتقل كيدې.

**د آقا خپل قرضدار عبد ماذون خرڅولو حكم**

قَالَ (وَإِنْ بَاعَهُ الْمَوْلَى) كه آقا ماذون خرڅ كړو. (وَعَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِرَقَبَتِهِ) حالانكه هغه باندې داسې قرضه ده. چه دده سټ راګيرونكې دي. (وَقَبَضَهُ الْمُشْتَرِي وَغَيَّبَهُ) و مشتري په ده باندې قبضه اوكړله. او غائب ئې كړو. (فَإِنْ

وَإِنْ شَاءُوا ضَمَّنُوا الْبَائِعَ قِيمَتَهُ، نو قرضخواه که غواړي بائع دې دده د قیمت ضامن جوړ کړي. وَإِنْ شَاءُوا ضَمَّنُوا الْمُشْتَرِي) او که غواړي مشتري دې (ضامن جوړ) کړي. لِأَنَّ الْعَبْدَ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُمْ حَتَّى كَانَ لَهُمْ أَنْ يَبِيعُوهُ، إِلَّا أَنْ يَقْضِيَ الْمَوْلَى دَيْنَهُمْ خکه چې ددوی حق غلام سره متعلق شوې وو. ترڅو چې هغوی ته دده د خرڅولو اختیار وو. مگر دا چې آقا ددوی قرضه لنډیز کړي. وَالْبَائِعُ مُتْلِفٌ حَقَّهُمْ بِالْبَيْعِ وَالتَّسْلِيمِ بیا بائع ددوی حق هلاکونکې دې. د خرڅولو، او سپارلو په ذریعه، وَالْمُشْتَرِي بِالْقَبْضِ وَالتَّغْيِيبِ او مشتري د قبضه کاوه او غائب کاوه په ذریعه، فَيُخَيَّرُونَ فِي التَّضْمِينِ نو په تاوان اخستلو کې به دوی ته اختیارات ورکولې شي. (وَإِنْ شَاءُوا أَجَازُوا الْبَيْعَ) او که غواړي نو بیع دې جائز اوګرځوي. (وَأَخَذُوا الثَّمَنَ) او ثمن دې واخلي. لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ خکه چې حق هم ددوی دې. وَالْإِجَازَةُ اللَّاحِقَةُ كَالْإِذْنِ السَّابِقِ كَمَا فِي الْمَرْهُونِ او روسته متعلق شوې اجازت به پشان د مخکنی اجازت شي. لکه څنګه چې په مرهون مال کې کیږي.

**تشریح:** آقا خپل عبد ماذون خرڅ کړو. حالانکه په ده باندې داسې قرضه وه. چه دده سټ نې ګیر کړې وو. او مشتري د قبضه کاوه نه روسته غلام غائب کړو. نو قرضخواهانو ته به درې اختیارات وي. ① ړومبې دا چې هغوی د بائع (آقا) نه دده د قیمت تاوان واخلي. خکه چې دده د اړخه تعدی اوموندې شوه. چه ده غلام خرڅ کړو او د هغوی حق نې ضائع کړو. ② دوهم اختیار دا دې. چه هغوی د مشتري غائبونکی نه تاوان واخلي. خکه چې دده د اړخه هم تعدی اوموندې شوه. چه ده په غلام باندې قبضه اوکړله. اوبیا نې هغه غائب کړو.

③ دریم اختیار دا دې. که هغوی اوغواړي. نو بیع دې جائز اوساتي. او د غلام ثمن دې وصول کړي. خکه چې د غلام د سټ حق هم ددوی لپاره خاص وو. نو په ده کې به دوی ته هر قسمه اختیار وي. او د بیع نه روسته به ددوی اجازت ورکول داسې وي. لکه چې د بیع نه وړاندې اجازت ورکړی. لکه څنګه چې په مال مرهون کې کیږي. که راهن مال مرهون د مرتهن د اجازت نه بغیر خرڅ کړو. نو مرتهن ته اختیار وي. چه د بیع اجازت ورکړي.

**سوال** که یوکس د غیر اړخه د هغه د اجازت نه بغیر کفالت اوکړو. بیا مکفول له اجازت ورکړو. نو کفیل په ده باندې رجوع نشي کولې؟

**جواب** خکه چې ده ته د اجازت حاجت نشته. نو په دې کې به اجازت هیڅ اثر نه کوی. او دلته کې داسې نه ده. خکه چې د بیع لزوم د قرضخواهانو په اجازت باندې موقوف دې.

(فَإِنْ ضَمَّنُوا الْبَائِعَ قِيمَتَهُ) وس که دوی د بائع نه دده د قیمت تاوان واخستلو. (ثُمَّ رُدَّ عَلَى الْمَوْلَى بِعَيْبٍ) بیا هغه د څه عیب په وجه آقا ته واپس کړې شو. (فَلِلْمَوْلَى أَنْ يَرْجِعَ بِالْقِيمَةِ) نو آقا قیمت واپس اخستلې شي. (وَيَكُونَ حَقُّ الْغُرَمَاءِ فِي الْعَبْدِ) نو د قرضخواهانو حق به په غلام کې شي. لِأَنَّ سَبَبَ الضَّمَانِ قَدْ زَالَ خکه چې د تاوان سبب ختم شو. وَهُوَ الْبَيْعُ وَالتَّسْلِيمُ او هغه خرڅول او سپارل دي. وَصَارَ كَالْغَاصِبِ إِذَا بَاعَ وَسَلَّمَ وَضَمِنَ الْقِيمَةَ او دا داسې شوه. لکه چې غاصب خرڅ کړو. او حواله نې کړو. او د قیمت ضامن شو. ثُمَّ رُدَّ عَلَيْهِ بِالْعَيْبِ بیا د عیب په وجه هغه ته واپس کړې شو. كَانَ لَهُ أَنْ يَرُدَّ عَلَى الْمَالِكِ نو هغه مالك ته واپس کولې شي. وَيَسْتَرِدَّ الْقِيمَةَ كَذَا هٰذَا او قیمت واپس اخستلې شي.

**تشریح:** اوس که قرضخواهانو د بائع نه تاوان واخستلو. او ددې نه روسته غلام د عیب په وجه واپس کړې شو. نو بائع به د قرضخواهانو نه قیمت واپس اخلي. خکه چې خرڅول، کوم چې د بائع د تاوان سبب وو. هغه ختم شو. نو د قرضخواهانو حق به د مخکې پشان مذکوره غلام سره متعلق وي. دا داسې شوه. لکه چې غاصب مغصوب غلام خرڅ کړو. او حواله نې کړو. او مالك ته نې دده د قیمت تاوان ورکړو. بیا هغه د عیب په وجه غاصب ته واپس کړې شو. نو غاصب ته اختیار وي. چه غلام مالك ته واپس کړي. او خپل قیمت واپس اخلي.



قَالَ (وَلَوْ كَانَ الْمَوْلَى بَاعَهُ مِنْ رَجُلٍ) که آقا ده لره د چا په لاس باندې خرڅ کړو.

**تشریح:** که آقا پور بیان کړو. او د عبد ماذون بیع نې اوکړله او مشتري د پور اقرار کوي. نو قرضخواهانو ته به د بیع واپس کاوه اختیار وي. خکه چې ددوی حق غلام سره متعلق دې. که هغوی غواړي. غلام باندې دې مزدوري اوکړي. او که غواړي. نو دده د ذات نه دې وصول کړي. او په دې کې هریو کې فائده ده. په مزدورۍ کاوه (او نفع حاصلولو) کې دا فائده ده. چه پوره قرضه وصولیږي. خو تاخیر سره، او د غلام د ذات نه وصولولو کې دا فائده ده. چه قرضه فی الحال وصولیږي. خو دې احتمال سره، چې ممکن ده کم وصول شي. او کله چې آقا ده لره خرڅ کړو. نو ددوی دا اختیار فوت شو. یعنی مزدوري کول پاته پاتې نشوه. نو دوی ته به د بیع رد کاوه اختیار وي.

وَأَعْلَمَهُ بِالدَّيْنِ او ددې پور نه نې خبر کړو. (فَلِلْغُرَمَاءِ أَنْ يَرُدُّوا الْبَيْعَ) نو قرضخواهانو ته د بیع رد کاوه اختیار شته. لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ خکه چې ددوی حق متعلق دې. وَهُوَ حَقُّ الْاِسْتِسْعَاءِ وَالْاِسْتِيفَاءِ مِنْ رَقَبَتِهِ، او هغه مزدوري کول او دده د سټ نه وصولول دي. وَفِي كُلٍّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فَائِدَةٌ، او په دې کې په هر یو کې فائده ده. فَالْأَوَّلُ تَامٌّ مُؤَخَّرٌ نو په مزدورۍ کاوه کې پوره فائده ده. خو موځر ده. وَالثَّانِي نَاقِصٌ مُعَجَّلٌ، او دویمه فائده ناقص ده. خو فوري (في الحال) ده. وَبِالْبَيْعِ تَفُوتُ هٰذِهِ الْخِيَرَةُ او په خرڅولو کې دا اختیار فوت کیږي. فَلِهٰذَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَرُدُّوهُ (دوه). په دې وجه هغوی بیع رد کولې شي.

**تشریح:** یعنی آقا د غلام خرڅولو په وخت مشتري ته اووئیل. چه کوم غلام زه ستا په لاس خرڅوم. هغه قرضدار دې. دده د بیانولو فائده دا ده. چه د پور د عیب په وجه د بیع رد کاوه کوم اختیار مشتري ته حاصلیږي. هغه به ساقطیږي. ترڅو چې دا بیع به د بائع او مشتري په منځ کې لازم واقع وي. اګرچه د قرضخواهانو په حق کې لازم نه وي. ﴿إذا لم يكن في ثمنه وفا بديونهم﴾

قَالُوا: مشائخ فرمائي. تَأْوِيلُهُ إِذَا لَمْ يَصِلْ إِلَيْهِمُ الثَّمَنُ، ددې تاویل دا دې. چه قرضخواهانو ته ثمن وصول نشو. فَإِنْ وَصَلَ که وصول شو. وَلَا مُحَابَاةَ فِي الْبَيْعِ او په بیع کې هیڅ محابات نشته. لَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَرُدُّوهُ (دوه) نو اوس بیع نشي رد کولې. لِوُصُولِ حَقِّهِمْ إِلَيْهِمْ خکه چې دوی ته ددوی حق اورسیدلو.

**تشریح:** مشائخو وئیلي دي. ددې مسئلې تاویل دا دې. چه د بیع رد کاوه اختیار هغه وخت دې. کله چې د غلام ثمن قرضخواهانو ته نه وي رسیدلې. او که ثمن نې وصول کړې وي. او په بیع کې څه محابات هم نشته. نو د بیع رد کاوه اختیار به نه وي. خکه چې ددوی په ثمن باندې قبضه کول، په بیع باندې د راضي کیدو دلیل دې.

### د غلام خرڅولو نه روسته د آقا د غائب کیدو مسئله

قَالَ (فَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ غَائِبًا) بیا که بائع غائب وي. (فَلَا خُصُومَةَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْمُشْتَرِي) نو د قرضخواهانو او مشتري په منځ کې به هیڅ خصومت (جګړه) نه وي. مَعْنَاهُ إِذَا أَنْكَرَ الدَّيْنَ ددې مطلب دا دې. چه کله مشتري د پور انکار اوکړي. وَهٰذَا (عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ). [1] او دا د طرفینو رحمهما الله په نیز دي.

**تشریح:** بیا که بائع (آقا) عبد ماذون خرڅ کړي. او غائب شي. او مشتري په ده باندې قبضه کړې وي. او دده د قرضدار کیدو منکر وي.

**د طرفینو رحمهما الله مسلک** د طرفینو رحمهما الله په نیز به د مشتري او قرضخواهانو په منځ کې مخاصمه (جګړه) نه

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في ملتقى الأبحر (۳۷\۴) والبحرالرائق (۱۹۱\۸) والهندية (۸۵\۵) نقلاً عن القول الراجح (۲۵۸\۲)

کیږي. او که هغه دده د قرضدار کیدو اقرار کوي.نو بې شکه چې هغه به خصم وي.لکه څنګه چې ذکر شوي دي.

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. الْمُشْتَرِي خَصْمُهُمْ چې مشتري به خصم وي. وَيَقْضِي لَهُمْ بِدَيْنِهِمْ او د قرضخواهانو لپاره به د هغوی د پور حکم ورکولې شي. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا اشْتَرَى دَارًا وَوَهَبَهَا او هم په دې اختلاف باندې (مبنی) دي.کله نې چې يو کور واخستلو.او هبه نې کړو. وَسَلَّمَهَا وَغَابَ او د سپارلو نه روسته پخپله غائب شو. ثُمَّ حَضَرَ الشَّفِيعُ بیا شفعه کونکې حاضر شو. فَالْمَوْهُوبُ لَهُ لَيْسَ بِخَصْمٍ عِنْدَهُمَا نو د چا سره نې چې هبه ايخودې دي.( يعنی موهوب له).هغه به خصم نه وي.د طرفینو رحمهما الله په نيز. خِلَافًا لَهُ. په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله ، وَعَنْهُمَا مِثْلُ قَوْلِهِ فِي مَسْأَلَةِ الشُّفْعَةِ او د طرفينو رحمهما الله نه په مسئلې د شفعه کې يو روايت د امام ابویوسف رحمه الله د قول پشان دي.

**تشریح: د امام ابویوسف رحمه الله مسلک:** امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه مشتري ددوی خصم (مدعی علیه) کیدای شي.او د قرضخواهانو لپاره به ددوی د قرضو حکم ورکولې شي. علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي.چه د شفعه په مسئله کې هم دغه ډول اختلاف دي.یعنی که یوکس يو کور واخستلو.او بل يو کس ته نې دا کور هبه کړو.او وې سپارلو.ددې نه روسته پخپله غائب شو.بیا شفعه کونکې حاضر شو.( چا ته چې ددې کور شفع ملاویږي ).نو د طرفينو رحمهما الله په نيز موهوب له دده مدعی علیه نشي کیدې.او د امام ابویوسف رحمه الله په نيز کیدای شي.په مسئلې د شفعه کې دا يو روايت د طرفينو رحمهما الله نه هم راغلې دي.

لِأَبِي يُوسُفَ د امام ابویوسف رحمه الله دليل دا دې. أَنَّهُ يَدَّعِي الْمِلْكَ لِنَفْسِهِ چې مشتري د خپل ملك دعوه کوي. فَيَكُونُ خَصْمًا لِكُلِّ مَنْ يُنَازِعُهُ. نو هغه به خصم وي.د هر هغه کس چې دده سره جګړه کوي.

**تشریح:** د امام ابویوسف رحمه الله دليل دا دې چه مشتري چونکه د خپل ملکیت مدعی دې.په دې وجه چې څوك هم دده سره جګړه کوي.د هغه به مدعی علیه وي.

وَلَهُمَا د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې. أَنَّ الدَّعْوَى تَتَضَمَّنُ فَسْخَ الْعَقْدِ چې مذکوره دعوه عقد فسخ کاوه ته متضمن ده. وَقَدْ قَامَ بِهِمَا حالانکه عقد دوی دواړو سره قائم شوې دې. فَيَكُونُ الْفَسْخُ قَضَاءً عَلَى الْغَائِبِ نو فسخ کول به په غائب باندې قضاء وي.

**تشریح: د طرفينو رحمهما الله دليل:** دا دې چه مذکوره دعوه عقد فسخ کاوه ته متضمن ده.حالانکه عقد د بائع او مشتري په ذريعه قائم شوې دې.نو فسخ کول به غائب بائع باندې حکم کول وي.حالانکه غائب باندې فیصله کول جائز نه دي.

### خپل ځان د آقا غلام ښکاره کولو نه روسته د خرخولو او اخستلو حکم

قَالَ (وَمَنْ قَدِمَ مِصْرًا) يو سړې ښار ته راغې. وَقَالَ او وې وئیل أَنَا عَبْدٌ لِفُلَانٍ چې زه د فلاني غلام يم. فَاشْتَرَى وَبَاعَ بیا هغه اخستل او خرخول اوکړل. لَزِمَهُ كُلُّ شَيْءٍ مِنَ التِّجَارَةِ نو په ده به لازم وي.هر هغه شئ چې د تجارت د قبیلې څخه وي. لِأَنَّهُ إِنْ أَخْبَرَ بِالْإِذْنِ څکه که هغه د اجازت حاصلولو خبر ورکړې دي. فَالْإِخْبَارُ دَلِيلٌ عَلَيْهِ نو دده خبر ورکول پخپله په ده باندې دليل دي. وَإِنْ لَمْ يُخْبِرْ او که ده دا خبر نه دې ورکړې. فَتَصَرُّفُهُ دَلِيلٌ عَلَيْهِ نو دده تصرف جائز دي. إِذِ الظَّاهِرُ أَنَّ الْمَحْجُورَ يَجْرِي عَلَى مُوجَبِ حَجْرِهِ څکه چې ښکاره هم دا ده.چه محجور کس به د خپل حجر مطابق عمل کوي. وَالْعَمَلُ بِالظَّاهِرِ هُوَ الْأَصْلُ فِي الْمُعَامَلَاتِ كَيْ لَا يَضِيقَ الْأَمْرُ عَلَى النَّاسِ او په ښکاره باندې عمل کول اصل دی په معاملاتو کې ،چه په خلګو باندې معامله تنګه نشي.

**تشریح:** يو سړې ښار ته راغې.او وې وئیل چه زه ( مثلاً د زيد) غلام يم.بیا هغه اخستل او خرخول اوکړل.نو



کوم شئ هم چې د تجارت د ډول څخه وي.هغه به په ده باندې لازم وي.اوس دا مسئله په دوې(دوه) وجو ده.

① يوه دا چې ده د اجازت حاصلیدو خبر ورکړې دې.یعنی خپل ماذون کیدل نې بیان کړل.نو استحساناً به دده تصديق کولې شي.که دې عادل وي.او که غیر عادل وي.② او د قياس تقاضه دا ده.چه دده تصديق نه کیږي. ﴿لقوله ﷺ: البينة على المدعي﴾ وجه د استحسان دا ده.چه په دې باندې د خلګو عمل دې.او اجماع د مسلمانانو يو داسې حجت دې.چه ددې په ذريعه د اثر هم تخصیص کیږي.او ددې په وجه قیاس پرېښودې شي.بیا په دې کې اړتیا او بلوی عام هم ده.څکه چې دده د تصرف د صحت لپاره اجازت کیدل ضروري دي.او د هر عقد په وخت حجت قائمول نا ممکن دي. ﴿والأصل في ذالك أن ما ضاق على الناس أمره اتسع حكمه و ما عمت بليته سقطت قضيته﴾.

② د مسئلې دويمه وجه دا ده.چه دې صرف اخستل او خرخول کوي.او د هیڅ شئ خبر نه ورکوي.یعنی دا نه وائي.چه آقا ماته اجازت راکړې دي.په دې صورت کې د قياس تقاضه دا ده.چه اجازت ثابت نشي.لکه چې په يوه وجه کې امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.څکه چې سکوت کې احتمال شته.خو استحساناً به اجازت ثابتیږي.څکه چې ښکاره هم دا ده.چه دې ماذون دې.( اجازت ورته ورکړې شوې دې).څکه چې د مسلمانانو کارونه چې ترکومه پورې ممکن وي.په صحیح باندې محمول کول ضروري دي.او دده د تصرف جواز د اجازت نه بغیر نشي ثابتیدې.نو دا به په اجازت باندې محمول کولې شي.او په ښکاره حال باندې عمل کول، هم دا په معاملاتو کې اصل دې.چه په خلګو باندې کار کې تنګي اونکړې شي.حاصل دا چې ده د اجازت ملاویدو خبر ورکړو.نو دده خبر ورکول پخپله په ده دليل دې.او که ده دخپل ماذون کیدو خبر ورنکړو.بیا هم دده تصرف جائز دې.بهرحال دې به ماذون ګڼرلې شي.او په تجارتي معاملاتو کې چې کوم پور راواوړي.هغه به په ده باندې لازم وي.

(إِلَّا أَنَّهُ لَا يُبَاعُ حَتَّى يَحْضُرَ مَوْلَاهُ) خو غلام به نشي خرڅولې.ترڅو چې دده آقا حاضر شي. لِأَنَّهُ لَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي الرَّقَبَةِ څکه چې د خپلې رقبې (ستې) اره کې دده قول نشي قبلیدې. لِأَنَّهَا خَالِصُ حَقِّ الْمَوْلَى څکه چې رقبه خو خالص د آقا حق دي. بِخِلَافِ الْكَسْبِ په خلاف د منافعو، لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَبْدِ عَلَى مَا بَيَّنَّا چې هغه د غلام حق دي. (فَإِنْ حَضَرَ فَقَالَ نو که آقا راشي.او اووائي. هُوَ مَأْذُونٌ چې دې ماذون دې. بِيعَ فِي الدَّيْنِ) نو په قرضه کې به خرڅولې شي. لِأَنَّهُ ظَهَرَ الدَّيْنُ فِي حَقِّ الْمَوْلَى څکه چې دا قرضه د آقا په حق کې هم ښکاره شوه. (وَإِنْ قَالَ او که آقا اووئیل. هُوَ مَحْجُورٌ چې دې محجور دي. فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ) نو هم دده قول به قبول وي. لِأَنَّهُ مُتَمَسِّكٌ بِالْأَصْلِ څکه چې هغه اصل نه حجت نیسي.

**تشریح:** د مخکنې قول ﴿لزمه كل شئ﴾ نه استثناء ده.مطلب دا دې.چه په مذکوره غلام باندې کومه قرضه لازم وي.هغې کې به دې نشي خرڅولې.ترکومه پورې چې دده آقا حاضر نشي.څکه چې د خپل رقبې (ستې) په اړه کې دده قول نه قبلیږي.څکه چې دا خو خالص د آقا حق دي.لکه څنګه چې وړاندې تیر شو. ﴿حيث قال: و يتعلق دينه بكسبه إلى أن قال لأن المولى إنما يخلفه في الملك بعد فراغه عن حاجة العبد﴾ بیا که آقا د حاضریدو نه روسته اووئیل.چه دې ماذون دې.نو هغه به قرضه کې خرڅولې شي.( که آقا دده قرضه لنډيز نکړي ).څکه چې د آقا په دې وئیلو سره ( چې دې ماذون دې ) دا پور د آقا په حق کې هم ښکاره شوه.اوکه آقا دا اووئیل.چه دې محجور دې.نو قسم سره به دده قول معتبر او قبول وي.څکه چې عدم اذن یعنی محجور کیدل اصل دی.او هغه اصل سره دليل نیسي.البته که قرضخواهانو په ده باندې بینه ( ګواهان) قائم کړل.چه آقا ده ته اجازت ورکړې دي.نو بیا به غلام خرڅولې شي.څکه چې د غلام په ده باندې د اجازت دعوه کول داسې دی.لکه د عتق او کتابت دعوه، نو د آقا د انکار په وخت به د بینه ( ګواهانو) نه بغیر دده قول نه قبلیږي.

## د بچي د تجارت حکم

(فَصْلٌ): (وَإِذَا أَذِنَ وَلِيُّ الصَّبِيِّ لِلصَّبِيِّ فِي التِّجَارَةِ) فصل: که د بچي ولي بچي ته د تجارت اجازت ورکړو (فَهُوَ فِي الْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ كَالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ) هغه په اخستلو او خرڅولو کې د عبد ماذون پشان دی. (إِذَا كَانَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ) کله چې په اخستلو او خرڅولو باندې پوهیږي (حَتَّى يَنْفُذَ تَصَرُّفُهُ) .تردې چې دده تصرف به نافذ وی.

**تشریح:** که د بچي ولي بچي ته د تجارت اجازت ورکړو.نو دا بچی په اخستلو او خرڅولو کې د عبد ماذون پشان دی.په دې شرط چې دی په اخستلو او خرڅولو باندې پوهیږي. «لأن البيع للملك سالب و الشراء له جالب» تردې چې دده تصرف به نافذ کیږی.په یو روایت کې امام احمد رحمه الله او بعض اصحاب د امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دی.

## د امام شافعي رحمه الله نقطه نظر

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعی رحمه الله فرمائی. لَا يَنْفُذُ، چې نه به نافذ کیږی. لِأَنَّ حَجْرَهُ لِصِبَاهُ خکه چې دده محجور کیدل، دده د ماشوم توب په وجه دی. فَيَبْقَى بِبَقَائِهِ،نو ترکومه پورې چې ماشوم توب پاته وی.حجر به پاته وی. وَلِأَنَّهُ مُوَلًّى عَلَيْهِ حَتَّى يَمْلِكَ الْوَلِيُّ التَّصَرُّفَ عَلَيْهِ او خکه چې بچی باندې دوهم سړی ولی مقرر کړې شوی دی.تردې چې ولی په ده باندې د تصرف وَيَمْلِكُ حَجْرَهُ او د حجر مالك دی. فَلَا يَكُونُ وَلِيًّا لِلْمُنَافَاةِ نو بچی پخپله ولي نشی کیدې.د منافات په وجه، وَصَارَ كَالطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ،نو دا د طلاق او عتاق پشان شو. بِخِلَافِ الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ په خلاف د روژې او د مانځه، لِأَنَّهُ لَا يُقَامُ بِالْوَلِيِّ، خکه چې دا ولی سره نشی قائمیدې. وَكَذَا الْوَصِيَّةُ عَلَى أَصْلِهِ او هم دغه ډول وصیت دی. فَتَحَقَّقَتِ الضَّرُورَةُ إِلَى تَنْفِيذِهِ مِنْهُ. نو ددوی په اصول باندې صرف د بچی د اړخه د وصیت نافذولو اړتیا متحقق شو. أَمَّا الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ پاتې شو اخستل او خرڅول، فَيَتَوَلَّاهُ الْوَلِيُّ نو ولی دده متولی کیدای شی. فَلَا ضَرُورَةَ هَاهُنَا. نودلته کې هیڅ اړتیا نشته.

**تشریح:** د امام شافعی او امام مالك رحمهما الله او په دوهم روایت کې د امام احمد رحمه الله په نیز به دده تصرف نه نافذ کیږی.

**د امام شافعی او امام مالك رحمهما الله دلیل:** خکه چې دده محجور کیدل د ماشوم توب په وجه دی.نو ترکومه پورې چې ماشوم توب پاته دې.حجر به هم پاته وی. «و بقاء العلة تستلزم المعلول لا محالة» او په دې وجه هم چې بچی خو پخپله مولی علیه دې.یعنی په ده باندې بل څوك ولی مقرر کړې شوې دی.تردې چې د ولی د اجازت نه روسته هم دده په مال کې (ولی) د تصرف اختیار لری.او دې محجور کولې هم شی.نو پخپله بچې ولی نشی کیدې.خکه چې په ولی کیدو او مولی علیه کیدو کې منافات دی.خکه چې مولا علیه کیدل د عجز علامت دې.او ولی کیدل د قدرت علامت دې.نو دا د طلاق او عتق پشان شو.چه د بچی طلاق ورکول او آزادول صحیح نه دی.اګرچه ولی ددې اجازت ورکړی.دغه ډول د تجارت اجازت به هم صحیح نه وی.په خلاف د روژې او د مانځه، چې دا د بچی د اړخه صحیح کیږی.خکه چې ددې اقامت د ولی په ذریعه نه کیږی.دغه ډول د امام شافعی رحمه الله په اصول باندې وصیت هم صحیح دې.خکه چې ددوی په نیز اصول دا دې.چه هر هغه تصرف کوم چې د ولی په ذریعه متحقق شی.هغه د بچی مباشرت (یعنی فعل او عمل) سره نه صحیح کیږی.او کوم تصرف چې د ولی په ذریعه متحقق نشی.هغه د بچي مباشرت سره صحیح کیږی.نو د بچی د اړخه د وصیت نافذ کاوه اړتیا متحقق شو.پاتی شو اخستل او خرڅول، نو ولی ددې متولی وی.نو د بچی د اړخه د نافذ کاوه هیڅ اړتیا نشته.

وَلَنَا زموږ دلیل دا دی. أَنَّ التَّصَرُّفَ الْمَشْرُوعَ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ فِي مَحَلِّهِ عَنْ وِلَايَةٍ شَرْعِيَّةٍ چې مشروع تصرف شرعی ولایت سره ددې د اهل نه پخپل محل کې صادر شوې دې. فَوَجَبَ تَنْفِيذُهُ عَلَى مَا عُرِفَ تَقْرِيرُهُ فِي الْخِلَافِيَّاتِ. نو ددې نافذ



کول ضروری دی.لکه څنګه چې خلافیات کې ددې ثبوت معلوم دې.

**تشریح:** زموږ دلیل دا دې.چه د بچی ماذون د اړخه اخستل او خرڅول یو مشروع تصرف دی.چه دا شرعی ولایت سره د داسې سړی نه صادر شوې دې.چه هغه ددې کار لائق دې.خکه چې هغه عاقل او هوښیار دې.او دا تصرف پخپل محل کې دې.خکه چې مبیع مال متقوم دې.نو ددې نافذ کول ضروری دی.

وَالصِّبَا سَبَبُ الْحَجْرِ لِعَدَمِ الْهِدَايَةِ لَا لِذَاتِهِ،او ماشوم توب د محجور کیدو سبب دې.د هدایت نه کیدو په وجه،د خپل ذات په وجه نه، وَقَدْ ثَبَتَتْ نَظَرًا إِلَى إِذْنِ الْوَلِيِّ،او دلته هدایت ثابت شو.د ولی د اجازت ور کاوه په وجه سره،

**تشریح:** د امام شافعی رحمه الله د قول خواب دې.چه ماشوم توب د محجورکیدو سبب دې.نو دا لذاته نه دې.بلکه په دې وجه دې.چه بچی ته د تصرف طریقه (او هنر) نه ورځی.خو د ولی اجازت ور کاوه سره دا معلومه شوه.چه ده ته دا خبره حاصله شوه.ګنی ولی به ده ته اجازت نه ورکولو.نو کله چې د بچی رائې د ولی رائې سره منضم (او مولښتی) شوه.نو بچې او بالغ دواړه برابر شو.نو د نفع اړخ ته به په اړخ د ضرر باندې ترجیح ورکولې شی.

وَبَقَاءُ وِلَايَتِهِ لِنَظَرِ الصَّبِيِّ لِاسْتِيفَاءِ الْمَصْلَحَةِ بِطَرِيقَيْنِ وَاحْتِمَالِ تَبَدُّلِ الْحَالِ،او د ولی د ولایت پاته پاتې کیدل د بچی د بهترۍ لپاره دی.په دوې (دوه) طریقو سره د مصلحت پوره کیدو اود حال بدلیدو د احتمال په وجه،

**تشریح:** د سوال خواب دې.سوال دا دې.چه هرکله د ولی په اجازت سره بچی ته هدایت د تصرف حاصل شو.نو د ولی ولایت پاته پاتې کیدل پکار نه دې؟

حاصل د خواب دا دې.چه د ولی ولایت په دې وجه پاته دې.چه د بچی مصلحتونه په دوې (دوه) طریقو پوره شی: ① یو دا چې بچی ته پخپله هم د نفع لار ملاؤ شی. ② دوهم دا چې ولی هم پالنه (او شفقت) کولې شی.او دا احتمال هم شته.چه شاید (کیدای شی چه) حال بدل شی. «فأبقينا ولاية الولي لتدارك ذالك».

بِخِلَافِ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ،په خلاف د طلاق او عتاق، لِأَنَّهُ ضَارٌّ مَحْضٌ چې دا خالص ضرر دې. فَلَمْ يُؤَهَّلْ لَهُ نو بچې ددې اهل او نه شوساتلې.. وَالنَّافِعُ الْمَحْضُ كَقَبُولِ الْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ او کومه نفع چې خالص ده.لکه هبه یا صدقه قبلول، يُؤَهَّلُ لَهُ قَبْلَ الْإِذْنِ،نو ددې به اهل ګڼرلې شی.د اجازت نه وړاندې هم. وَالْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ دَائِرٌ بَيْنَ النَّفْعِ وَالضَّرَرِ او اخستل او خرڅول د نفع او نقصان په منځ کې دائر دی. فَيُجْعَلُ أَهْلًا لَهُ بَعْدَ الْإِذْنِ لَا قَبْلَهُ،نو بچې به ددې اهل معتبر کولې شی.د اجازت نه پس، ددې نه وړاندې نه، لَكِنْ قَبْلَ الْإِذْنِ يَكُونُ مَوْقُوفًا مِنْهُ عَلَى إِجَازَةِ الْوَلِيِّ لِاحْتِمَالِ وُقُوعِهِ نَظَرًا،خو د اجازت نه وړاندې د ولی په اجازت باندې ددې د وقوع په احتمال وَصِحَّةُ التَّصَرُّفِ فِي نَفْسِهِ، او فی نفسه د تصرف نه صحیح کیدو په وجه،

**تشریح:** د امام شافعی رحمه الله د قول «فصار كا الطلاق و العتاق» خواب دې.ددې تشریح دا ده.چه بچې مستحق د شفقت هم دې.او د ضرر نه هم محفوظ دې.او تصرفات په درې قسمه وی.① رومبې ضار محض: لکه طلاق او عتاق، هبه او صدقه، د داسې تصرفاتو بچې نه مالك کیږی.اګرچه ولی ددې اجازت ورکړی.② دوهم نافع محض: لکه هبه او صدقه قبلول، ددې هغه د ولی د اذن نه بغیر هم مالك کیږی.③ دریم د نفع او ضرر په منځ کې دائر کیدل: لکه بیع او شراء، اجاره او نکاح، بچې په اجازت د ولی ددې تصرفاتو مالك کیږی.او د اجازت نه بغیر نه مالك کیږی.نو د اجازت نه وړاندې به د بچی اخستل او خرڅول موقوف وی.خکه ممکن ده.چه هغه بهترۍ (او نفعې) سره واقع شوې وی.

## د ولي اطلاق به په چا کیږي؟

وَذِكْرُ الْوَلِيِّ فِي الْكِتَابِ يَنْتَظِمُ الْأَبَ او په کتاب کې د لفظ ولی ذکر پلار ته، وَالْجَدَّ عِنْدَ عَدَمِهِ او دده د نه کیدو په وخت نیکه ته، وَالْوَصِيَّ وَالْقَاضِيَ وَالْوَالِيَ،او وصی ، او قاضی او والی ته کډ دې. بِخِلَافِ صَاحِبِ الشُّرَطِ په خلاف د

صاحب شرط (د ښار امير او حاکم) لِأَنَّهُ لَيْسَ إِلَيْهِ تَقْلِيدُ الْقُضَاةِ، ځکه چې هغه ته د قاضي مقرر کاوه اختيار نه وي.

تشريح: شرط د شرطة جمع ده. او شرط په معنى د علامت سره دې. «من اشراط الساعة أى علاماتها» بيا شرطة د فوج هغه مخکي دستې (او لښکر) ته وائی. کوم چې د ګر جنګ ته راشي. په قول د اصمعي وجه د تسميه دا ده. چه هغوی داسې علامت لګوی. چه هغې سره هغوی پيژندې شي. دلته کي ددې نه مراد د ښار امير (حاکم) دې. لکه امير بخارا، امير سمرقند وغيره، دوی ته د قاضي مقررولو اختيار نه وی. په خلاف د والی چې هغه ته دا اختيار وی. «فكان الوالى أكبر منه»

### د ماذون بچي عبد ماذون سره د تشبيه ورکولو وجه

وَالشَّرْطُ أَنْ يَعْقِلَ كَوْنَ الْبَيْعِ سَالِبًا لِلْمِلْكِ او شرط دا دې. چه هغه دومره پوهيږي. چه بيع سالب د ملك وی. جَالِبًا لِلرِّبْحِ، او جالب د نفع وی. وَالتَّشْبِيهُ بِالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ لَهُ يُفِيدُ أَنَّ مَا يَثْبُتُ فِي الْعَبْدِ مِنَ الْأَحْكَامِ يَثْبُتُ فِي حَقِّهِ، او بچی ته عبد ماذون سره تشبيه ورکول ددې فائده ورکوی. چه کوم احکام د عبد ماذون په حق کي ثابت شو. هغه به د بچي په حق کي هم ثابتيږی. لِأَنَّ الْإِذْنَ فَكُّ الْحَجْرِ، ځکه چې اجازت ورکول خو حجر لرې کول وی. وَالْمَأْذُونُ يَتَصَرَّفُ بِأَهْلِيَّةِ نَفْسِهِ عَبْدًا كَانَ أَوْ صَبِيًّا، او ماذون پخپل ذاتی اهليت سره تصرف کوی. که غلام وی او که بچې، فَلَا يَتَقَيَّدُ تَصَرُّفُهُ بِنَوْعٍ دُونَ نَوْعٍ، نو دده تصرف به هم د تجارت يو خاص ډول سره مقيد نه وی. وَيَصِيرُ مَأْذُونًا بِالسُّكُوتِ كَمَا فِي الْعَبْدِ، او هغه به هم سکوت ماذون کيږی. لکه څنګه چې د غلام په حق کي دی. وَيَصِحُّ إِقْرَارُهُ بِمَا فِي يَدِهِ مِنْ كَسْبِهِ او دده په قبضه کي چې کومه منافع ده. د هغې په اړه کي به دده اقرار صحيح وی. وَكَذَا بِمَوْرُوثِهِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ، او هم دغه ډول د خپل موروث مال په اړه کي په ظاهر الرواية کي، كَمَا يَصِحُّ إِقْرَارُ الْعَبْدِ وَلَا يَمْلِكُ تَزْوِيجَ عَبْدِهِ وَلَا كِتَابَتَهُ كَمَا فِي الْعَبْدِ، او هغه به د خپل غلام د نکاح او مکاتب کاوه مالك نه وی. لکه څنګه چې د غلام په صورت کي دی. وَالْمَعْتُوهُ الَّذِي يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ بِمَنْزِلَةِ الصَّبِيِّ يَصِيرُ مَأْذُونًا بِإِذْنِ الْأَبِ وَالْجَدِّ وَالْوَصِيِّ او معتوه (ناقص العقل) چې هغه په اخستلو او خرڅولو باندې پوهيږی. هغه په مرتبه د صبي دې. چه د پلار، نيکه، او د وصي په اجازت سره ماذون کيږی. دُونَ غَيْرِهِمْ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ، د نورو په اجازت سره نه کيږی. په هغه دليل کوم چې موږ بيان کړو. وَحُكْمُهُ حُكْمُ الصَّبِيِّ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ او دده حکم د بچي پشان دې. والله اعلم.

تشريح: ۞يعنی د ماشوم په ماذون کيدو کي دا شرط دې. چه هغه پوهيږی. چه په خرڅولو سره ملك ختميږی. او منفعت حاصليږی. او په «و هو فى البيع و الشراء كالعبد المأذون» کي د بچي ماذون سره کومه تشبيه ورکړې شوې ده. د هغې فائده دا ده. چه کوم احکام د عبد ماذون په حق کي ثابت شو. هغه به د ماشوم ماذون په حق کي هم ثابت وی.

## (كِتَابُ الْغَصْبِ)

ژباړه: (دا) کتاب د غصب (د احکامو په بيان کي) دې.

تشريح: لکه څنګه چې عبد ماذون تصرف نافذ کيدل په اجازت سره کيږی. دغه ډول د غاصب تصرف نافذ کيدل هم په اذن سره کيږی. فرق دا دې. چه د غاصب د تصرف نافذ کيدل په روستنی اذن سره کيږی. او د عبد ماذون تصرف نافذ کيدل په مخکني اذن سره کيږی. په دې وجه د کتاب الماذون نه روسته کتاب الغصب راوړی. يا داسې اووئيلې شی. چه عبد ماذون د بل په مال کي شرعی اجازت سره تصرف کوی. او غاصب د شرعی اجازت نه بغير د بل په مال کي تصرف کوی. نو په دې دواړو کي مناسبت مقابله ده. خو مصنف رحمه الله کتاب الماذون مقدم کړې دې. او کتاب الغصب ئې موخر کړې دې. ځکه چې ړومبې مشروع دې. او دوهم غير مشروع دې.



### د غصب لغوی او شرعی معنی

الْغَصْبُ فِي اللُّغَةِ: أَخْذُ الشَّيْءِ مِنَ الْغَيْرِ عَلَى سَبِيلِ التَّغَلُّبِ لِلِاسْتِعْمَالِ فِيهِ. غصب په لغت کي عبارت دې په طريقه د زبردستۍ د بل څه شئ اخستلو نه، د اهل لغت په نيز دلته په دې معنی کي د استعماليدو په وجه، وَفِي الشَّرِيعَةِ: أَخْذُ مَالٍ مُتَقَوِّمٍ مُحْتَرَمٍ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَالِكِ عَلَى وَجْهٍ يُزِيلُ يَدَهُ. او په شريعت کي د يو کس قيمتي محترم مال د مالك د اجازت نه بغير په داسې طريقه اخستل دی. چه د هغه قبضه ختمه کړي.

تشريح: غصب په لغت کي يو شئ په زبردستۍ اخستل دی. که دا شئ مال وی او که غير مال وی. «كقال غصب زوجة فلان و خمر فلان» او ددې شرعی تعريف کوم چې علامه مرغيناني رحمه الله ذکر کړې دې. په دې کي دوي (دوه) نور (زياتی) قيدونه ضروری دی. چه په محيط برهانی او کافي وغيره کي ذکر دی. نو په اصطلاح د شريعت کي د غصب جامع مانع تعريف دا دې. «هو إزالة اليد المحقة بإثبات اليد المبطلة» ،، غصب د حقدار قبضه لرې کول او ناحق قبضه کول دی ،، مصنف رحمه الله هم دا ذکر کړې دې. خو دا پوره تعريف نه دې بلکه صرف د غصب حقيقت اړخ ته اشاره ده. پوره تعريف دا دې. «هو إزالة اليد المحقة أو تقصيره بفعل بإثبات اليد المبطلة فى مال متقوم محترم قابل للنقل بلا إذن من له الإذن على سبيل المجاهرة» ،، يعنی غصب محقق قبضه په واسطه د فعل په علانيه مختار طريقه د اذن د اجازت نه بغير زائل يا ناقص کول دی. ناقص قبضه مضبوطولو سره په داسې قيمتي او محترم مال کي چې هغه منتقل کيدای شی ،، په تعريف کي لفظ د ازاله عام دې. که حقيقتاً وی او که حکماً وی. د حکماً مثال لکه د مودع د وديعت نقل کاوه نه مخکي انکار کول. چه د انکار نه وړاندې د مودع قبضه وی. او کله چې مودع د وديعت انکار اوکړو. نو د مالك قبضه حکماً زائل شوه. غصب کي چونکه د ازالې د يَد (يعنی د قبضې) اعتبار وی. په دې وجه به زوائد مغصوب (د مغصوب منافع) مضمون نه وی. ځکه چې دې کي ازاله نه وی. (و سيلتی) او د ،، تقصير ،، په قيد سره تعريف کي شموليت راغې. يعنی که څوك سړې د مستاجر يا مرتهن يا مودع نه مال په زبردستۍ واخلی. نو دلته کي اګر چې د مالك د قبضې ازاله نشته. ځکه چې د غصب په وخت دا مال د سره د مالك په قبضه کي نه دې. خو تقصير د قبضې موجود دې. نو دا صورت هم په غصب کي داخل دې. د ،، بفعل ،، په قيد سره د بل په بستره باندې کښينستل خارج شو. «فإن الإزالة موجودة فيه لكن لا بفعل فى العين» د ،، مال ،، په قيد سره مردار او آزاد سړې خارج شو. چه په دې کي غصب نه ثابتيږی. ځکه چې دا مال نه دې. د ،، متقوم ،، په قيد سره د مسلمان شراب اووتل. ځکه چې دا د مسلمان په حق کي قيمتی نه دې. او ددې استعمال جائز نه دې. د محترم په قيد سره د حربی کافر مال خارج شو. ځکه چې دده مال محترم نه دې. په ،، قابل للنقل ،، سره غير منقول شيان مځکه وغيره اووتل. چه په دې کي د شيخينو رحمهما الله په نيز غصب نه ثابتيږی. د ،، بلا اذن من له الاذن ،، په ذريعه وديعت او عاريت نه احتراز اوشو. ځکه چې دې کي قابل د نقل مال متقوم نه د محقق قبضې ازاله کيږی. خو چونکه د مالك په اجازت سره کيږی. په دې وجه غصب کي داخل نه دې. او دا وقف ته هم ګډ دې. ځکه چې وقف مال اګر چه د چا مملوك نه وی. خو د هلاکاوه په صورت کي ددې ضمان لازميږی. په ،، سبيل المجاهره ،، سره سرقه اووتله. ځکه چې سرقه کي ازاله خفيفتاً وی. او په غصب کي په ښکاره طريقه وی.

فائده۞ د بعضو حضراتو په نيز غصب صرف د محقق قبضې د ازالې نوم دې. نو که د يوکس په لاس کي موتی (غمې) وی. او څوك دده لاس اووهی. او درياب ته ئې اوغورځوی. نو تاوان به لازم وی. حالانکه اثبات د يد نشته. او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز صرف اثبات د يَد مبطله نوم دې. نو ددوی په نيز زوائد (محاصل) مغصوب يعنی د مغصوب باغ ميوې هلاکاوه سره به تاوان لازم وی. ځکه چې اثبات د يد موجود دې. او زموږ په نيز به تاوان نه وی. ځکه چې ازاله د يَد موجود نه ده.

حَتَّى كَانَ اسْتِخْدَامُ الْعَبْدِ، تردې چې د غلام نه خدمت اخستل، وَحَمْلُ الدَّابَّةِ غَصْبًا يا په خاروی باندې رابار کول به غصب وی. دُونَ الْجُلُوسِ عَلَى الْبِسَاطِ، په بستره باندې کښينستل به (غصب) نه وی.

**تشریح:** د غصب په مذکوره تعریف باندې متفرع ده.یعنی چونکه د غصب حقیقت د حقدار قبضه لرې کول او ناحق قبضه کول دی.نو د غیر د غلام نه خدمت اخستل او د غیر په خاروی باندې بوج راوړل به غصب وی.ځکه چې د خدمت اخستونکی او د بوج بار کونکی د تصرف قبضه ثابت ده.چه ددې لپاره د مالك د قبضې ازاله ضروری ده.خو د بل په بستره باندې کښینستل به غصب نه وی.ځکه چې بستره خورول د مالك فعل دې.او په استعمال کې د هغه اثر پاته دې.او د کوم کس د فعل اثر چې پاته وی.نو د هغه قبضه پاته وی.نو د قبضې ازاله او نه موندې شوه.

| |
|---|
| **ثُمَّ إِنْ كَانَ مَعَ الْعِلْمِ فَحُكْمُهُ الْمَأْثَمُ وَالْمَغْرَمُ** بیا که په قصد سره وی.نو ددې حکم گناه او ضمان دې.**وَإِنْ كَانَ بِدُونِهِ فَالضَّمَانُ**.او که د علم نه بغیر وی.نو ضمان دې.**لِأَنَّهُ حَقُّ الْعَبْدِ فَلَا يَتَوَقَّفُ عَلَى قَصْدِهِ وَلَا إِثْمَ** ځکه چې دا د بنده حق دې.نو دده په قصد به موقوف نه وی.او گناه نشته.**لِأَنَّ الْخَطَأَ مَوْضُوعٌ** ځکه چې خطاء معاف ده. |

**تشریح:** بیا که غاصب ته دا پته وه.چه دا شئ د مغصوب منه ملك دې.او غصب ئې کړو.نو غاصب به گنهگار او ضامن وی.لقوله تعالی **﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ﴾** و قال ﷺ «من أخذ شبراً من الأرض ظلماً طوقه الله من سبع أرضين» (صحیحین) او که دا د علم نه بغیر داسې اوکړل.نو ضامن به وی.ځکه چې دا د بنده حق دې.نو دده په قصد به موقوف نه وی.او گناه ځکه نشته.چه کوم فعل په خطاء سره اوشی.د هغې گناه پورته کړې شوې ده.
وقال ﷺ «رفع عن أمتى الخطاء و النسيان و ما استكرهوا عليه».

## د غصب شوی څیز د تاوان حکم

| |
|---|
| **قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ شَيْئًا لَهُ مِثْلٌ كَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ فَهَلَكَ فِي يَدِهِ)** چا چې غصب کړو.یو مثلی څیز،لکه کیلی یا وزنی شیان او هغه هلاك شو دده سره، **(فَعَلَيْهِ مِثْلُهُ)** نو په ده د هغې مثل واجب دې.**وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ**:او په بعضو نسخو کې دی.**فَعَلَيْهِ ضَمَانُ مِثْلِهِ**، چې په ده ضمان د مثل ددې دې.**وَلَا تَفَاوُتَ بَيْنَهُمَا**، او په دې دواړو کې هیڅ توپیر نشته. |

**تشریح:**- د ترجمې نه مطلب واضح دې

| |
|---|
| **وَهَذَا لِأَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ الْمِثْلُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى** او دا ځکه دې.چه واجب خو مثل دې.په دلیل د قول د الله تعالی ،، { **فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ** چا چې په تا ظلم اوکړو.**فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ** } ته هم د هغې په مثل ظلم اوکړه ،، ﴿البقره:۱۹۳﴾ **وَلِأَنَّ الْمِثْلَ أَعْدَلُ** او ځکه چې په مثل کې زیات انصاف دې.**لِمَا فِيهِ مِنْ مُرَاعَاةِ الْجِنْسِ وَالْمَالِيَّةِ** ځکه چې په دې کې د جنس او مالیت زیات رعایت دې.**فَكَانَ أَدْفَعَ لِلضَّرَرِ**.نو ضرر بنه لرې شو.**قَالَ (فَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى مِثْلِهِ** بیا که قادر نه وو ددې په مثل باندې، **فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ يَوْمَ يَخْتَصِمُونَ)** په ده باندې دهغې قیمت دې.د جګړې د ورځې،**وَهَذَا (عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)** نو او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې. |

**تشریح:** د غصب اجمالی حکم ذکر کاوه نه روسته ددې تفصیل بیانوی.فرمائی.که مغصوب شئ هلاك شوې وی.او هغه مثلی وی.یعنی کیلی یا وزنی (مثلاً غنم، اوربشې، دراهم او دنانیر وغیره) نو د مغصوب مثل واپس کول ضروری دی.لقوله تعالی **﴿فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ﴾** او که ددې مثل منقطع شوې وی.یعنی هغه بازار کې نه موندلې کیږی.نو ددې قیمت واجب دې.

**د امام صاحب رحمه الله مسلک** د امام صاحب رحمه الله په نیز د جګړې د ورځې اعتبار دې.یعنی په کومه ورځ چې د حاکم حکم شوې وی.د هغه ورځې پوره قیمت ورکول واجب دی.

| |
|---|
| **وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ:** امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.**يَوْمَ الْغَصْبِ**. چې د غصب د ورځې (قیمت به واجب وی). |

**تشریح: د امام شافعی او امام ابویوسف رحمه الله مسلک** د امام مالك، فقیه ابوالليث رحمهما الله او د امام شافعی رحمه الله اکثر اصحاب ددې قائل دی.د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د غصب د ورځې قیمت واجب دې.



| |
|---|
| **وَقَالَ مُحَمَّدٌ:** او امام محمد رحمه الله فرمائی.**يَوْمَ الْإِنْقِطَاعِ**() چې د انقطاع د ورځې (قیمت واجب دې). |

**تشریح: د امام محمد رحمه الله مسلک** د امام محمد رحمه الله په نیز د هغه ورځې قیمت واجب دې.په کومه ورځ چې ددې مثل منقطع شوې دې.امام زفر، امام احمد رحمهما الله او بعض اصحاب د امام شافعی رحمه الله ددې قائل دی.

| |
|---|
| **لِأَبِي يُوسُفَ** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.**أَنَّهُ لَمَّا انْقَطَعَ الْتَحَقَ بِمَا لَا مِثْلَ لَهُ** چې کله دا منقطع شو.نو غیر مثلی سره یوځائې شو.**فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ انْعِقَادِ السَّبَبِ** نو د سبب د انعقاد د ورځې قیمت به معتبر وی.**إِذْ هُوَ الْمُوجِبُ**. ځکه چې هم دا موجب دې. |

**تشریح:** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې.چه کله ددې مثل منقطع شو.نو دا شئ غیر مثلی شیان سره یوځائې شو.نو د سبب د انعقاد د ورځې د قیمت اعتبار به کولې شی.

| |
|---|
| **وَلِمُحَمَّدٍ** او د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې.**أَنَّ الْوَاجِبَ الْمِثْلُ فِي الذِّمَّةِ** چې واجب خو دده په ذمه مثل دې.**وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْقِيمَةِ بِالْإِنْقِطَاعِ** او قیمت اړخ ته منتقل کیدل، د انقطاع په وجه اوشو.**فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْإِنْقِطَاعِ**. نو د انقطاع د ورځې قیمت به معتبر وی. |

**تشریح: د امام محمد رحمه الله دلیل** د امام محمد رحمه الله دلیل دا دې.چه د غاصب په ذمه ددې مثل واجب دې.او د انقطاع په وجه دا د مثل قیمت اړخ ته منتقل کیږی.نو د انقطاع د ورځې قیمت به معتبر وی.

| |
|---|
| **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.**أَنَّ النَّقْلَ لَا يَثْبُتُ بِمُجَرَّدِ الْإِنْقِطَاعِ**، چې منقطع کیدل خالی انقطاع سره نه ثابتیږی.**وَلِهَذَا لَوْ صَبَرَ إِلَى أَنْ يُوجَدَ جِنْسُهُ لَهُ ذَلِكَ**،هم دا وجه ده.که ددې د جنس موجود کیدو پورې صبر اوکړی.**وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ بِقَضَاءِ الْقَاضِي** نو مالك ته ددې اختیار دې.منتقل کیدل خو د قاضی په قضاء سره کیږی.**فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْخُصُومَةِ وَالْقَضَاءِ** نو د جګړې او فیصلې والا ورځې قیمت به معتبر وی.**بِخِلَافِ مَا لَا مِثْلَ لَهُ** په خلاف د غیر مثلی ، **لِأَنَّهُ مُطَالَبٌ بِالْقِيمَةِ بِأَصْلِ السَّبَبِ كَمَا وُجِدَ** ځکه چې دې کې د اصل سبب په موجود کیدو سره فوراً د قیمت مطالبه کولې شی.**فَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ عِنْدَ ذَلِكَ** نو هم د هغه وخت قیمت به معتبر وی. |

**تشریح: د امام صاحب رحمه الله دلیل** امام ابوحنیفه رحمه الله دا فرمائی.چه د مثل واجب قیمت اړخ ته منتقل کیدل، صرف د مثل د انقطاع په وجه سره نه کیږی.هم دا وجه ده.که مالك د مغصوب د مثل ملاویدو پورې صبر اوکړی.تردې چې ددې مثل واخلی.نو هغه ته ددې اختیار وی.بلکه قیمت اړخ ته منتقل کیدل د قاضی په قضاء سره کیږی.نو د خصومت د ورځې د قیمت اعتبار به کیږی.په خلاف د داسې شئ چې د هغې مثل نه وی.چه هغې کې د اصل سبب یعنی د غصب موجود کیدو سره فوراً د قیمت مطالبه ثابتیږی.نو په دې کې به هغه قیمت معتبر وی.کوم چې د غصب کاوو په ورځ وو.په خزانه کې ئې د امام صاحب رحمه الله قول ته اصح وئیلی دې.او په شرح وقایه کې د امام ابویوسف رحمه الله قول ته اعدل او په نهایه کې ئې ورته مختار وئیلی دی.او په ذخیرة الفتاوی کې ئې د امام محمد رحمه الله قول ته مفتی به وئیلی دی.

**فائده** دلته علامه مرغینانی رحمه الله د خپل عادت په خلاف تعلیل کې د امام ابویوسف رحمه الله قول مخکې کړې دې.حالانکه ددوی د قول د تعلیل حق دا وو.چه د طرفینو رحمهما الله د قول په منځ کې ئې ذکر کړې وې.صاحب د نهایه رحمه الله ددې دوې (دوه) امله بیان کړی دی.① رومبی: دا چې ممکن ده.چه د موصوف په نیز د دلیل د قوت په لحاظ سره د امام ابویوسف رحمه الله قول مختار وی.په دې معنی چې په دې کې د موجب د ثبوت په اعتبار سره د حکم اثبات دې.ځکه چې مغصوب شئ د غصب د وخت نه د غاصب په ضمان کې داخل شوې

---

[1]) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا فى مجمع الأنهر(٤\٩) والدرالمنتقى (٤\٨٠) وردالمحتار(٥\١٢٩) وحاشية الزيلعى (٥\٢٢٣) والهندية (٥\١١٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٥٨)

دي.نو د قيمت اعتبار هم د غصب د وخت نه پکار دي. ② دويمه وجه دا ده.چه د اقوال ثلاثه اثبات د ترتيب زماني موافق منظور دي.چه په اوقات ثلاثه کي ړومبي وخت د غصب ورځ ده.بيا ورځ د انقطاع ده.بيا ورځ د خصومت (او دجګړې) ده.او مذکوره اقوال د زمانو په دې ترتيب باندي راوستل په دې طريقه کيداي شي.چه ړومبي قول د امام ابويوسف رحمه الله وي.بيا د امام محمد رحمه الله قول وي.بيا د امام ابوحنيفه رحمه الله قول وي.

خو په دې دواړو وجو باندي صاحب د نتائج دا اختلاف کړي ده.چه د دليل مذکور مضمون په دې قوت باندي دلالت نه کوي.خکه چي مثلي مغصوب کوم چې په وخت د غصب د غاصب په ضمان کي داخل شوي دي.هغه د مثل ضمان سره شوي دي.بيا د انقطاع په وجه ضمان قيمت ارخ ته منتقل شو.لکه خنګه چي پخپله علامه مرغيناني رحمه الله د امام محمد رحمه الله په دليل ذکر کاوه کي ددې تصريح کړي ده.نو د قيمت وخت د غصب د وخت نه معتبر کيدل د کوم خاني نه لازم شو.تردې چي دا قوت دليل ته مستلزم شي.او که د دليل قوت اومنلي شي.نو د علامه مرغيناني رحمه الله د عادت مطابق د امام ابويوسف رحمه الله دليل روستنه کول پکار دي. «اذ من عادة المستمرة أن يؤخر القوى عند ذكر الأدلة» پاتې شوه وجه ثاني ، نو اقوال د ترتيب زماني موافق راوړلو کي هيڅ فقې مقصد متعلق نه دي.نو ددې وهمي امر په وجه خپل مقرر اسلوب بدلول د علامه مرغيناني رحمه الله د شان سره مناسب نه ښکاري.

### د مثلي څيز نه علاوه د مغصوبه څيز حکم

قال (وَمَالَامِثْلَ لَهُ) او د کوم چې هيڅ مثل نه وي. (فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ يَوْمَ غَصْبِهِ) نو په هغې به د غصب د ورځې قيمت (لازم) وي. مَعْنَاهُ الْعَدَدِيَّاتُ الْمُتَفَاوِتَةُ،ددې مطلب دا دې.چه د شمير غير متفاوت شيان دي. لِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ مُرَاعَاةُ الْحَقِّ فِي الْجِنْسِ خکه چي کله په جنس کي د حق رعايت متعذر شو. فَيُرَاعَى فِي الْمَالِيَّةِ وَحْدَهَا نو صرف په ماليت کي به ملحوظ ساتلې کيږي. دَفْعًا لِلضَّرَرِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ. په قدر د امکان د ضرر دفع کاوه دپاره.

تشريح: که مغصوب داسې شئ وي.چه د هغې مثل نه وي.نو په غاصب به د هغې هغه قيمت واجب وي.کوم چې د غصب کاوه په ورځ وو.علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.چه د قدوري د قول «لامثل له» نه مراد د شمير شيان دي.چه ددې په افرادو کي تفاوت (کمې زياتې) وي.لکه خربوزه، انار،او سفرجل (يو ډول ميوه ده د ناشپاتۍ پشان) د قيمت د وجوب وجه دا ده.چه هرکله د مالك د حق پوره کول په معلوم جنس کي متعذر شو.نو په خالي ملکيت کي به ئې لحاظ ساتلې کيږي. لپاره ددې چې ترکومه پورې ممکن وي.د ضرر دفعيه اوکړې شي.

أَمَّا الْعَدَدِيُّ الْمُتَقَارِبُ فَهُوَ كَالْمَكِيلِ پاتې شو عدد متقارب نو هغه د کيلي پشان دي. حَتَّى يَجِبَ مِثْلُهُ لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ. تردې چې ددې مثل به واجب وي.د تفاوت کميدو په وجه. وَفِي الْبُرِّ الْمَخْلُوطِ بِالشَّعِيرِ الْقِيمَةُ،او اوربشو سره ملاو شوي غنمو کي قيمت دي. لِأَنَّهُ لَامِثْلَ لَهُ خکه چي ددې مثل نشته.

تشريح: پاتې شو د شمير هغه شيان چي دهغې افراد نه متفاوت کيږي.لکه غوزان، او هګۍ او فلوس وغيره.نو هغه زموږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله او د اکثرو عالمانو په نيز د کيلي پشان دي.تردې چي د هغې مثل به واجب وي.خکه چي ددې په ماليت کي تفاوت (اختلاف) کم وي.د امام زفر رحمه الله په نيز به ددې قيمت واجب وي.خکه چي دا په مثل کي برابر نه دي.د اهل مدينه او د اصحاب ظاهريه په نيز به ددې مثل واجب وي. «فيصبر حتى يوجد مثله».

قال (وَعَلَى الْغَاصِبِ رَدُّ الْعَيْنِ الْمَغْصُوبَةِ) او غاصب باندې عين مغصوبه واپس کول ضروري دي. مَعْنَاهُ ددې



مطلب دا دي. مَادَامَ قَائِمًا چي ترکومه پورې دا شئ موجود وي. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" خکه د نبي کريم ﷺ ارشاد دي،، {عَلَى الْيَدِ مَا أَخَذَتْ حَتَّى تَرُدَّ}(١) په لاس باندي هغه دي.کوم چې ده واخستل. تردې چې هغه واپس کړي ،، وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" او نبي کريم ﷺ اوفرمائيل،، لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَأْخُذَ مَتَاعَ أَخِيهِ لَاعِبًا وَلَا جَادًّا، چې هيڅ چاله حلال نه دي.چه د خپل رور شئ واخلي.نه د لوبو په طور، او نه د قصد په طريقه، فَإِنْ أَخَذَهُ نو که واخلي. فَلْيَرُدَّهُ عَلَيْهِ}(٢) "نو هغه ته دې هغه شئ واپس کړي ،، وَلِأَنَّ الْيَدَ حَقٌّ مَقْصُودٌ او خکه چي قبضه هم مقصود حق دي.کوم چې ده ختم کړو. وَقَدْ فَوَّتَهَا عَلَيْهِ فَيَجِبُ إِعَادَتُهَا بِالرَّدِّ إِلَيْهِ.نو هم هغه شئ واپس کاوه سره د هغه قبضې واپس کول ضروري دي.

تشريح: مذکوره تفصيل هغه وخت دې.کله چې مغصوب شئ هلاک شوې وي.اوکه هغه بعينه پاته وي.د هغې واپس کول ضروري دي.خکه د نبي کريم ﷺ ارشاد دې. «على اليد ما أخذت حتى تؤدي» (سنن أربعه، أحمد، طبراني، حاكم، إبن أبي شيبه، عن سمره) دغه ډول د نبي کريم ﷺ ارشاد دې. «لا يأخذ أحدكم متاع أخيه جاداً ولا لاعباً و إذا أخذ أحدكم عصا أخيه فليردها» (أبوداؤد، ترمذى، أحمد، إبن أبي شيبه إبن راهويه، أبوداؤد طيالسى، حاكم، بخارى فى المفرد، عن يزيد بن السائب) او په دې وجه هم چې د سړي قبضه يو مقصودي حق وي.چه په دې سره هرقسمه انتفاع کولې شي.او غاصب دا قبضه ختمه کړله.نو ددې قبضې اعاده په دې طريقه ضروري ده.چه هغه ته هم هغه شئ واپس کړي.

وَهُوَ الْمُوجِبُ الْأَصْلِيُّ عَلَى مَا قَالُوا،او په قول د مشانخو اصلي حکم هم دا دي. وَرَدُّ الْقِيمَةِ مُخَلِّصٌ خَلَفًا،او قيمت واپس کول خو د خلاصي لپاره خليفه دي. لِأَنَّهُ قَاصِرٌ،خکه چې ادا ناقص ده. إِذِ الْكَمَالُ فِي رَدِّ الْعَيْنِ وَالْمَالِيَّةِ.خکه چې کمال خو د عين شئ او ماليت په واپس کاوه کي دې. وَقِيلَ او ونيلي شوي دي. الْمُوجِبُ الْأَصْلِيُّ الْقِيمَةُ چې اصلي حکم قيمت واپس کول دي. وَرَدُّ الْعَيْنِ مُخَلِّصٌ،او عين شئ واپس کول خلاصي دي.

تشريح: د مغصوبه څيز اصل حکم◉بيا په قول د مشانخو د غصب اصلي حکم دا دي.چه بعينه هم هغه شئ واپس کړې شي.پاتې شو قيمت واپس کول، نو دا د خلاصي موندلو لپاره ددې خليفه دې.خکه چې دا ناقص اداکول دي.کامل اداکول هم دا دي.چه عين شئ سره د ماليت نه واپس کړې شي.او په قول د بعضو مشانخو د غصب اصلي حکم قيمت واپس کول دي.او عين واپس کول خلاصي دي.

وَيَظْهَرُ ذَلِكَ فِي بَعْضِ الْأَحْكَامِ،او دا په بعضو احکامو کي ښکاره کيږي.

تشريح: علامه مرغيناني رحمه الله فرماني.چه ددې اختلاف ثمره (فائده) په بعضو احکامو کي ښکاره کيږي.مثلاً: ① که د عين موجود کيدو په حالت کي غاصب د تاوان نه بري کړي.نو دا صحيح ده. تردې که ددې نه روستنه هلاك شي.نو ضمان نه واجبيږي.که موجب اصلي قيمت نه وې.نو ابراء به نه صحيح کيدله. «لأن الإبراء عن العين لا يصح» ② د مغصوب کفالت صحيح دې معلومه شوه.چه اصلي موجب قيمت دي.ګني ښکاره ده.چه د عين کفالت به نه صحيح کيدلو.③ که د غاصب په ملك کي نصاب وي.او هغه څه شئ غصب کړې وي.نو هغه باندې زکاة نه واجبيږي.حالانکه د مغصوب د موجود کيدلو په حالت کي د قيمت

(١) من حديث سمرة رضي الله عنه أخرجه أبوداود فى البيوع باب ٨٨ رقم ٣٥٦١ والترمذى فى البيوع باب ٣٩ وابن ماجه فى الصدقات باب ٥ رقم ٢٤٠٠ والنسائى فى السنن الكبرى (٤١١/٣) رقم ٥٧٨٣ والبيهقى فى السنن الكبرى (١٤٤/٦) والدارمى فى البيوع باب ٨٨ والحاكم فى المستدرک (٣٤٧/٢) وأحمد فى المسند(١٣/٥) وابن ابى شيبة فى المصنف كتاب ١٥)_

(٢) من حديث يزيدبن السائب رضي الله عنه أخرجه أخرجه أبوداود فى الأدب با ٨٥ رقم ٥٠٠٣) والترمذى فى الفتن باب ٣ رقم ٢١٦٠ وأحمدفى المسند(٢٢١/٤) والحاكم فى المستدرک (٦٣٧/٣)_

وجوب د مغصوب په مقابله کې هغه نصاب کم وي.

(وَالْوَاجِبُ الرَّدُّ فِي الْمَكَانِ الَّذِي غَصَبَهُ) او واجب هم هلته واپس کول دي. د کوم ځاې نه ئې چې غصب کړي وو. لِتَفَاوُتِ الْقِيَمِ بِتَفَاوُتِ الْأَمَاكِنِ د ځايونو په اختلاف سره، د قيمت مختلف کيدو په وجه، (فَإِنِ ادَّعَى هَلَاكَهَا) بيا كه دده دعوه اوكړله، د هغې د ضائع كيدو، حَبَسَهُ الْحَاكِمُ نو قاضي دې هغه قيد كړي. حَتَّى يَعْلَمَ أَنَّهَا لَوْ كَانَتْ بَاقِيَةً لَأَظْهَرَهَا ثُمَّ قَضَى عَلَيْهِ بِبَدَلِهَا) لِأَنَّ الْوَاجِبَ رَدُّ الْعَيْنِ ځكه چې واجب عين شئ واپس كول وو. وَالْهَلَاكُ بِعَارِضٍ، او ضائع كيدل عارضي امر دي. فَهُوَ يَدَّعِي أَمْرًا عَارِضًا خِلَافَ الظَّاهِرِ نو هغه د داسې عارضي امر دعوه کوي، چه هغه د ښکاره خلاف دي. فَلَا يُقْبَلُ قَوْلُهُ كَمَا إِذَا ادَّعَى الْإِفْلَاسَ نو دده قول به قبول نه وي. لكه مثلاً مشتري د غريبۍ دعوه اوكړله. وَعَلَيْهِ ثَمَنُ مَتَاعٍ چې دده په ذمه د سامان قيمت دي. فَيُحْبَسُ إِلَى أَنْ يَعْلَمَ مَا يَدَّعِيهِ نو هغه به قيد كولې شي. تردې چې كومه دعوه كوي. هغه معلومه شي. فَإِذَا عَلِمَ الْهَلَاكَ بيا چې كله هلاكيدل معلوم شو. سَقَطَ عَنْهُ نو بعينه واپس كول ساقط شو. رَدُّهُ فَيَلْزَمُهُ رَدُّ بَدَلِهِ نو ددې عوض واپس كول ضروري شو. وَهُوَ الْقِيمَةُ او هغه قيمت دي.

**تشريح:** بيا د كوم ځاې نه چې غاصب دا غصب كړې وو. هم هلته کې واپس كول ضروري دي. ځكه چې د ځاې په مختلف كيدو سره قيمتونه مختلف كيږي. اوس كه غاصب دعوه اوكړله، چه مغصوب مال هلاك شو. نو حاكم به دې قيد كړي. تردې چې دا خبره ښكاره شي. كه دا مال پاته وې. نو هغه به د قيد د تكليفونو نه د خلاصي لپاره ضرور ښكاره كړې وو. يا غاصب ددې په هلاكاوه باندې بينه قائم كړي. كه دا نه وي. نو قاضي به په دې غاصب باندې د مغصوب مال د عوض حكم وركوي وجه دا ده. چه په غاصب باندې بعينه مال واپس كول ضروري او واجب وو. او هلاكيدل عارضي امر دې. نو هغه د ظاهر خلاف د عارضي امر مدعي شو. نو خالص دده قول به نه قبليږي. لكه مثلاً يو اخستونكې (مشتري) چې په ده باندې د مبيع ثمن لازم دې. خو د خپلې غريبۍ دعوه اوكړي. نو خالي دعوه نه قبليږي. بلكه هغه قيد كولې شي. بيا كله چې د مغصوب مال هلاكيدل معلوم شي. نو عين مغصوب واپس كول به دده د ذمې نه ساقط شي. او د هغې عوض واپس كول به ضروري وي او عوض هم دغه قيمت دي.

## غصب په کومو څيزونو کښې کيږي؟

قَالَ (وَالْغَصْبُ فِيمَا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ) او غصب هم په هغې کې كيږي. چه هغه منتقل او محول (اخوا) كيداې شي. لِأَنَّ الْغَصْبَ بِحَقِيقَتِهِ يَتَحَقَّقُ فِيهِ دُونَ غَيْرِهِ ځكه چې غصب په حقيقت کې په دې کې متحقق كيږي. ددې نه په علاوه کې نه كيږي. لِأَنَّ إِزَالَةَ الْيَدِ بِالنَّقْلِ ځكه چې د قبضې ازاله په ذريعه د نقل كيږي.

**تشريح:** ددې قول اصل مقصد دا بيانول دي. چې د غصب تحقق صرف په منقوله څيزونو کې كيږي. كوم چې د يو ځاې نه بل ځاې کې ايخودل ممكن وي. او په غير منقول کې غصب نه متحقق كيږي. صرف د منقول څيزونو د غصب تحقق بيانول مقصود نه دي. ځكه چې نه په دې کې څه خلاف دې. او نه څه اشتباه ده. خلاف او اشتباه خو په غير منقول کې د غصب په نه متحقق كيدو کې ده. نو مذكوره تركيب «و الغصب فيما ينقل و يحول» کې قصر او حصر معتبر دې. لكه څنګه چې تاج الشريعة صاحب د عنايه رحمه الله بلكه پخپله صاحب د هدايه رحمه الله هم دې اړخ ته اشاره كړې ده. «حيث قال: لأن الغصب بحقيقته يتحقق فيه دون غيره» اوس پاتې شوه دا خبره چې په تركيب کې ادات د حصر كوم دي؟ نو هغه غالباً لام جنس سره د مسند اليه تعريف دې. چه دا مسند باندې د مسند اليه د قصر فائده وركوي. چه ددې تصريح په علم معاني کې موجود ده. «ومثلوه بنحو: التوكل على الله، الكرم في العرب، الائمة من قريش» د قول مطلب دا دې.

(وَإِذَا غَصَبَ عَقَارًا) كه عقار (ځمكه، عمارت وغيره) ئې غصب كړو (فَهَلَكَ فِي يَدِهِ) او هغه دده په قبضه کې هلاك



شو. (لَمْ يَضْمَنْهُ) نو غاصب به ددې ضامن نه وي. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ. دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دي.

**تشريح:** دا مسئله په اصل مذكور باندې متفرع ده. په دې وجه د واؤ په ځاې ،،فا،، سره ،،فرذا غصب،، ونيل پكار دي. لكه چې نورو عامو كتابونو کې په دې موقع باندې كلمه د فاء. او په محيط کې كلمه د حتى راوړولې شوې ده. او د تعجب خبره دا ده. چه دلته په مختصر القدوري کې كلمه د فاء وه. خو علامه مرغيناني رحمه الله په بدايه، او نهايه دواړو کې فاء په واؤ سره بدل كړو.

**د شيخينو رحمهما الله مسلك:** د شيخينو رحمهما الله په نيز د غصب تحقق صرف په منقول څيزونو کې كيږي. ځكه چې غصب په حقيقت کښې اعيان منقوله کې كيږي. غير منقوله کې نه كيږي. ځكه چې غصب د قبضې د ازالې نه بغير نشي كيدې. او د مالك د قبضې ازاله به هغه وخت كيږي. كله چې منقول منتقل كړې شي. حالانكه عقار کې نقل او تحويل نا ممكن دي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله فرمائي. يَضْمَنُهُ، [1] چې ضامن به وي. وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ الْأَوَّلُ د امام ابويوسف رحمه الله رومبې قول هم دا دي. وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ لِتَحَقُّقِ إِثْبَاتِ الْيَدِ، او امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې. د

قبضې ثابتول متحقق كيدو په وجه، وَمِنْ ضَرُورَتِهِ زَوَالُ يَدِ الْمَالِكِ چې په دې سره د مالك قبضه زائل كيدل ضروري ده. لِاسْتِحَالَةِ اجْتِمَاعِ الْيَدَيْنِ عَلَى مَحَلٍّ وَاحِدٍ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ ځكه چې په يو حالت کې په يو محل باندې د دوې (دوه) قبضو جمع كيدل نا ممكن دي. فَيَتَحَقَّقُ الْوَصْفَانِ نو دواړه وصف متحقق شو. وَهُوَ الْغَصْبُ عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ او هم دا غصب دې. فَصَارَ كَالْمَنْقُولِ وَجُحُودِ الْوَدِيعَةِ. نو دا د منقول د غصب او د وديعت نه د انكار پشان شو.

**تشريح: عقار او د امام محمد او أئمه ثلاثه رحمهم الله مسلك:** ځكه چې په يو حالت کې په يو محل باندې د دوې (دوه) قبضو جمع كيدل ناممكن دي. نو دواړه وصفونه متحقق شو. يعنى ازاله د يد محققه او اثبات د يد مبطله، او هم دا غصب دې. نو د عقار حكم داسې شو. لكه مال منقول غصب كول، او د وديعت انكار كول. چه په دې کې بالاتفاق ضامن كيږي. او په حديث کې دي. چه كوم كس د چا د يو ليشت برابر ځمكه غصب كړي. الله تعالى به د قيامت په ورځ د هغه په سټ کې د اووه ځمكو طوق ورواچوي. (صحيحين)

وَلَهُمَا شيخينو رحمهما الله دليل دا دي. أَنَّ الْغَصْبَ إِثْبَاتُ الْيَدِ بِإِزَالَةِ يَدِ الْمَالِكِ بِفِعْلٍ فِي الْعَيْنِ، چې غصب خپله قبضه ثابتول دي. د مالك قبضه زائل كاوه سره، په عين شئ کې په يو فعل سره، وَهَذَا لَا يُتَصَوَّرُ فِي الْعَقَارِ او دا خبره په عقار (ځمكه وغيره) کې غير متصور ده. لِأَنَّ يَدَ الْمَالِكِ لَا تَزُولُ إِلَّا بِإِخْرَاجِهِ عَنْهَا، ځكه چې د مالك قبضه به نه زائل كيږي. خو هغه د عقار نه په اوښكلو سره، وَهُوَ فِعْلٌ فِيهِ لَا فِي الْعَقَارِ او دا فعل به په مالك کې كيږي. په عين مال کې به نه كيږي. فَصَارَ كَمَا إِذَا بَعَّدَ الْمَالِكُ عَنِ الْمَوَاشِي. نو داسې شوه. لكه چې مالك د خپلو څارو د رمې نه لرې اوغورځوي.

**تشريح:** د شيخينو رحمهما الله دليل دا دې. چه د غصب لپاره ازاله د يد محققه او اثبات د يد مبطله سره په عين مغصوب کې د غاصب تصرف هم ضروري دې. او دا خبره په ځمكه کې غير متصور ده. ځكه چې د مالك د يد (قبضې) د ازالې صورت هم دا دې. چه هغه د ځمكې نه اوښكلې شي. او ښكاره ده. چه اوښكل صرف تصرف في المال دې. تصرف في المغصوب نه دې. نو دا داسې شوه. لكه چې د څاروو د رمې نه ددې مالك

---

[1]) القول الراجح في هذه المسئلة تفصيل وهو إن كان الغاصب غصب أرضاً أو داراً موقوفاً فالفتوى في هذه الصورة على قول قول محمد رحمه الله وإن كان الغاصب غصب أرضاً غير موقوفة فالقول المفتى به هو قول الشيخين رحمهما الله يفهم هذا الترجيح من الدرالمنتقى (٨١\٤) والبحرالرائق (٢٠٢\٨) ومجمع الأنهر (٨١\٤) والدر المختار (١٣١\٥) وحاشية الزبلعي (٣٤٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٠\٢)

لرې جلا کړي.چه په دې صورت کې که رمه هلاکه شي.نو غصب نه وي.پاتې شو مذکوره حديث نو هغه په مدعا باندې دلالت نه کوي.ځکه چې په دې کې نبي کريمﷺ د زمکې د غصب بدله (او سزا) په طوق سره بيان کړې ده.که ضمان واجبيدو.نو هغه به ئې بيان کړې وو.ځکه چې ضمان د دنياوي احکامو څخه دې.او په حديث کې په مځکه باندې د غصب د لفظ اطلاق مجازاً دې.لکه چې حديث «باع حرا» کې د حر (آزاد) د بيع لپاره لفظ د بيع ونيلې شوې دې. «او الالزم تحقق البيع فى الحر» ددې نه علاوه په صحيحينو کې د ،، غصب شبرا،، په ځائې ،،اخذ شبرا،، دې.

وَفِي الْمَنْقُولِ: النَّقْلُ فِعْلٌ فِيهِ او منقول منتقل کول پخپله په دې مال کې کيږي.وَهُوَ الْغَصْبُ. او هم دا غصب دې وَمَسْأَلَةُ الْجُحُودِ مَمْنُوعَةٌ.او د وديعت د انکار مسئله ممنوع ده.وَلَوْ سُلِّمَ او که اومنلې شي.فَالضَّمَانُ هُنَاكَ بِتَرْكِ الْحِفْظِ الْمُلْتَزَمِ نو هلته کې تاوان د هغه ساتنه د پريخودو په وجه دې.دکوم ئې چې التزام کړې وو.وَبِالْجُحُودِ تَارِكٌ لِذَلِكَ او انکار سره هم ددې پريخودونکې دې.

تشريح: د امام محمد رحمه الله د قول «فصار كالمنقول» خواب دې چه په خلاف د منقول، چې مال منقول منتقل کول په دې مال کې يو فعل دې.او هم دا غصب وي.پاتې شوه د وديعت د انکار مسئله، نو دا خو اول منو نه. بلکه که د يوکس سره ئې عقار وديعت کيخودو.بيا هغه د وديعت نه منکر شو.نو د زيات صحيح قول مطابق به بالاتفاق ضامن نه وي.لکه څنګه چې مبسوط کې ذکر دې.او که موږ اومنو.نو بيا هم د وديعت په صورت کې د ضمان وجوب ځکه دې.چه د کوم ساتنه ده التزام کړې وو.هغه ئې پريخودو.او په انکار د وديعت کې هم دا لازميږي.په بزازيه کې د شيخينو رحمهما الله د قول تصحيح ده.خو په عينى ، شرح کنز ، منح، فتاوى ظهيريه وغيره کې دې.چه په باب د وقف کې فتوى د امام محمد رحمه الله په قول ده.

### د مغصوبه زمکې حکم

قَالَ (وَمَا انْتَقَصَ مِنْهُ بِفِعْلِهِ أَوْ سُكْنَاهُ ضَمِنَهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا) او په عقار کې چې کوم څه دده په فعل يا اوسيدو سره ناقص شي.د هغې به ضامن وي.د ټولو په قول کې ، لِأَنَّهُ إِتْلَافٌ ځکه چې دا هلاکول شو.وَالْعَقَارُ يُضْمَنُ بِهِ كَمَا إِذَا نَقَلَ تُرَابَهُ.او ددې په وجه د عقار ضمان وي.لکه چې ددې خاوره منتقل کړي.لِأَنَّهُ فِعْلٌ فِي الْعَيْنِ ځکه چې دا فعل په عين عقار کې دې.

تشريح: په مغصوبه عقار (مځکه يا کور وغيره) کې څه غاصب پخپل فعل سره ناقص کړو.يا هغه دده په اوسيدو سره ناقص شو.نو د امام ابوحنيفه، صاحبينو، او د امام شافعي رحمهم الله د ټولو په قول کې به ضامن وي.د امام محمد او د امام شافعي رحمهما الله په قول باندې خو وجوب د ضمان ښکاره دې.او هم دغه د شيخينو رحمهما الله په قول باندې هم، ځکه چې دا هلاکول دی.او د هلاکاوه په وجه د عقار ضمان واجبيږي.لکه (مثلاً) دعقار خاوره اونړه وي.او منتقل ئې کړي.نو ضامن کيږي.ځکه چې دا په عين عقار کې خپل فعل دې.

فائده: د نقصان معلومولو طريقه د نصير بن يحي د قول مطابق دا ده.چه اودې کتلې شي.چه د استعمال نه وړاندې دا مځکه په څومره باندې په اجاره ملاويدله.او د استعمال نه روسته په څومره ملاويږي.نو کوم تفاوت چې وي.هم هغه نقصان دې.او د محمد بن مسلمه د قول مطابق د نقصان معلومولو طريقه دا ده.چه اودې کتلې شي چه دا مځکه مخکې په څومره خرڅيدله.او اوس په څومره خرڅيږي.په دې کې چې کوم توپير وي.هم هغه نقصان دې. «قيل رجع محمد إلى قول نصر».

وَيَدْخُلُ فِيمَا قَالَهُ إِذَا انْهَدَمَتِ الدَّارُ بِسُكْنَاهُ وَعَمَلِهِ.او کوم څه چې ماتن رحمه الله فرمائيلې دی.په دې کې هغه هم داخل دې کله چې کور دده په اوسيدو يا دده په عمل سره وران شو.

تشريح: علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي چه د ابو الحسين قدوري رحمه الله په قول «وما نقص منه» کې دا صورت هم داخل دې چه کور د غاصب په اوسيدو يا دده په عمل (حداوت و قصارت) سره اونړيدو.نو هغه به په دې



باندې ضمان ادا کوي. «بسكناه و عمله» قيد ئې ددې لپاره لګولې دې.که کور دده د اوسيدو يا دده د عمل نه بغير په بل څه آسماني آفت سره هلاك شوې وي.نو د شيخينو رحمهما الله په نيز به ضمان واجب نه وي.

فَلَوْ غَصَبَ دَارًا که کور ئې غصب کړو.وَبَاعَهَا او خرڅ ئې کړو.وَسَلَّمَهَا او وې سپارلو.وَأَقَرَّ بِذَلِكَ وَالْمُشْتَرِي يُنْكِرُ حالانکه بائع ددې د غصب منکر دې.غَصْبَ الْبَائِعِ بيا ئې ددې د غصب اقرار اوکړو.وَلَا بَيِّنَةَ لِصَاحِبِ الدَّارِ او مالك د کور سره بينه نشته.الْهُوَ عَلَى الِاخْتِلَافِ فِي الْغَصْبِ نو دا هم په دې اختلاف باندې (مبنى) دې.کوم چې غصب کې دې.هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده.

تشريح: دا مسئله د مسائلو د اصل يعنى د مبسوط څخه ده.کوم چې علامه مرغيناني رحمه الله په د قدوري په مسئله باندې د تفريع په طور ذکر کړې ده.مسئله دا ده.چه غاصب يو کور غصب کړو.او خرڅ ئې کړو.او مشترى ته ئې حواله کړو.بيا ئې ددې د غصب اقرار اوکړو.حالانکه مشترى ددې د امر نه منکر دې.چه بائع غصب کړې دې.او د کور مالك سره په دې باندې شهادت موجود نه دې.چه دا زما ملك دې.نو په دې کې هم دا اختلاف دې.کوم چې په غصب کې دې.يعنى د شيخينو رحمهما الله په نيز عقار کې غصب نه کيږي.نو بائع به ضامن نه وي.او د امام محمد، امام زفر او د امام شافعي رحمهم الله په نيز به ضامن وي.خو اختلاف هغه وخت دې.کله چې د کور مالك سره شهادت نه وي.ګني بالاتفاق به بائع باندې ضمان نه وي.

قَالَ (وَإِذَا انْتَقَصَ بِالزِّرَاعَةِ که مځکه په کروندې سره ناقصه شوه.يَغْرَمُ النُّقْصَانَ) نو د نقصان به ضامن وي.لِأَنَّهُ أَتْلَفَ الْبَعْضَ ځکه چې ده بعض هلاك کړو.فَيَأْخُذُ رَأْسَ مَالِهِ نو هغه دې خپل راس المال واخلي.وَيَتَصَدَّقُ بِالْفَضْلِ. او زياتې دې صدقه کړي.قَالَ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.(وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ()) چې دا د طرفينو رحمهما الله په نيز دی.وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.لَا يَتَصَدَّقُ بِالْفَضْلِ) چې زياتي دې نه صدقه کوي.وَسَنَذْكُرُ الْوَجْهَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او موږ به د دواړو طرفونو دليل ډير زر بيان کړو.

تشريح: که مغصوبه مځکه د غاصب په کروندې سره نقصاني شوه.نو غاصب به دمالك لپاره د نقصان ضامن وي.ځکه چې ده ددې بعض هلاك کړې دې. «او العقار يضمن بالإتلاف بلا خلاف»

د طرفينو رحمهما الله مسلک: نو هغه دې خپل راس المال واخلي.او زياتي دې صدقه کړي.دا د طرفينو رحمهما الله په نيز دی.امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه زياتي دې نه صدقه کوي.ځکه چې منهى عنه ددې نفع ده.د کوم ضمان ئې چې نه دې ورکړې.حالانکه دلته کې هغه ضامن شو.د دواړو طرفونو دليل د راروان قول «و من غصب عبدا فاستغله فنقصته» لاندې راروان دې.

### د غاصب په قبضه کښې د منقولې څيز د ضمان حکم

قَالَ (وَإِذَا هَلَكَ النَّقْلِيُّ فِي يَدِ الْغَاصِبِ بِفِعْلِهِ کله چې هلاك شو، منقول شئ د غاصب په قبضه کې ، دده په فعل سره أَوْ بِغَيْرِ فِعْلِهِ يا دده د فعل نه بغير، ضَمِنَهُ) نو ددې به ضامن وي.وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ: وَإِذَا هَلَكَ الْغَصْبُ په اکثرو نسخو کې ،، وإذا هلك الغصب،، دي.وَالْمَنْقُولُ هُوَ الْمُرَادُ او مراد هم هغه منقول دې.لِمَا سَبَقَ أَنَّ الْغَصْبَ فِيمَا يُنْقَلُ.ځکه وړاندې تير شو.چه غصب په منقول کې کيږي.وَهَذَا لِأَنَّ الْعَيْنَ دَخَلَ فِي ضَمَانِهِ بِالْغَصْبِ السَّابِقِ او دا ځکه دې.چه مال عين دده په ضمان کې داخل شو.د تيرشوى غصب په وجه، إِذْ هُوَ السَّبَبُ.ځکه چې غصب سبب دې.وَعِنْدَ الْعَجْزِ عَنْ رَدِّهِ يَجِبُ الْقِيمَةُ او ددې د واپسئ نه د عاجز کيدو په وخت، د قيمت واپسى واجبيږي.أَوْ يَتَقَرَّرُ بِذَلِكَ السَّبَبُ يا قيمت مقرر شو.ددې د سبب په وجه، وَلِهَذَا تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْغَصْبِ په دې وجه ددې د غصب د

---

[1]) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ملتقى الأبحر(٨٢\٤) والبحرالرائق (٢٠٣\٨) ورد المحتار (١٣٢\٥) والدرالمنتقى (٨٢\٤) والهندية (١٢٠\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٠\٢)

ورخې قيمت معتبر شو.

**تشريح:** که د غاصب په قبضه کې دده په فعل سره يا دده د فعل نه بغير مال منقول هلاك شو.نو هغه به دده ضامن وي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په اکثرو نسخو کې د،، النقلى،، په ځائې،، الغصب،،، دې.او مراد هم هغه منقول مال دې.ځکه دا خبره وړاندې معلومه شوه.چه د غصب تحقق په داسې مال کې کيږي.چه هغه منقول وي.د ضامن کيدو وجه دا ده.چه د تيرشوي غصب په ذريعه دا مال دده په ضمانت کې دا خل شو.ځکه چې غصب دده سبب دې.او کله چې دده د واپسۍ نه عاجز شو.نو دده د قيمت واپسي واجب،شوه.يا کوم خلگ چې دا واني.چه قيمت واپس کول اصل دې.نو دده سبب په وجه قيمت مقرر شو.او دده په وجه مخکنې غصب دده سبب وي.هغه قيمت به معتبر وي.کوم چې دده غصب په ورځ وو.

(وَإِنْ نَقَصَ فِي يَدِهِ)او که ناقص شو دده په قبضه کې ،(ضَمِنَ النُّقْصَانَ)نو د نقصان به ضامن وي.لِأَنَّهُ يَدْخُلُ جَمِيعُ أَجْزَائِهِ فِي ضَمَانِهِ بِالْغَصْبِ،ځکه چې دده واړه اجزاء دده په ضمان کې داخل شو.د غصب په وجه، فَمَا تَعَذَّرَ رَدُّ عَيْنِهِ نو کله چې بعينه واپس کول متعذر شو.يَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهِ،دده قيمت واپس کول به واجب وي. بِخِلَافِ تَرَاجُعِ السِّعْرِ إِذَا رَدَّ فِي مَكَانِ الْغَصْبِ،په خلاف د نرخ (قيمت) کميدلو، کله نې چې واپس کړو.د غصب په ځائې کې، لِأَنَّهُ عِبَارَةٌ عَنْ فُتُورِ الرَّغَبَاتِ،ځکه چې نرخونه کميدل،د رغبتونو دسستيدو نه عبارت دې.دُونَ فَوْتِ الْجُزْءِ،د جزء د فوت کيدو نه (عبارت) نه دې.وَبِخِلَافِ الْمَبِيعِ،او په خلاف د مبيع، لِأَنَّهُ ضَمَانُ عَقْدٍ، ځکه چې دا ضمان عقد دې.أَمَّا الْغَصْبُ فَقَبْضٌ بهرحال غصب نو دا ضمان قبض دې.وَالْأَوْصَافُ تُضْمَنُ بِالْفِعْلِ لَا بِالْعَقْدِ عَلَى مَا عُرِفَ. او د اوصافو ضمانت د فعل په وجه کيږي.د عقد په وجه نه کيږي.لکه څنګه چې معلومه شوه.

**تشريح:** که دا مال منقول هلاك خو نشو.البته دده په قبضه کې عيبدار شو.نو د نقصان به ضامن وي.ځکه چې د غصب په وجه دده مال واړه اجزاء دده په ضمانت کې داخل شو.د کوم جزء، چې بعينه واپس کول متعذر وي.د هغې د قيمت واپس کول به واجب وي.دده په خلاف که مال نې هم هلته واپس واخستلو.کوم ځائې نې چې غصب کړې وو.او دده قيمت کم شو.نو بالاتفاق به د کمی ضامن نه وي.ځکه د نرخ کميدو مطلب دا وي.چه رغبتونه سست شو.دا مطلب نه وي.چه دده څه جزء بې کاره شو.په خلاف د مبيع، که بائع سره دده څه وصف ناقص شو.نو هغه به ضامن نه وي.ځکه چې بيع ضمان عقد دې.او غصب ضمان قبضه ده.او د اوصافو ضمانت په وجه د فعل کيږي.د عقد په وجه نه کيږي.لکه څنګه چې په كتاب البيوع کې معلومه شوه.چه د اوصافو په مقابله کې ثمن وي.او په عين مغصوب کې تاوان د غاصب په فعل سره وي.

قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ:علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.وَمُرَادُهُ غَيْرُ الرِّبَوِيِّ، چې مراد د غير سود مال دې.أَمَّا فِي الرِّبَوِيَّاتِ پاتو شو د سود والا مال، لَا يُمْكِنُهُ تَضْمِينُ النُّقْصَانِ مَعَ اسْتِرْدَادِ الْأَصْلِ،نو اصل واپس کاوه سره د نقصان ضامن جوړول ممکن نه دی.لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا ځکه چې دا به سود ارخ ته رسوي.

**تشريح:** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه «وإن نقص في يده» سره د ابو الحسين قدوري رحمه الله مراد داسې مالونه دی.چه هغه سود والا نه وي.که د سود والا مالونه وي.نو اصل واپس کاوه سره به د نقصان تاوان اخستل ممکن نه وي.ځکه چې د سود والا مالونو کې کره او کوټه برابر وي.که کره غنم نې غصب کړل.او هغې کې نې اوبه ملاؤ کړې.او بيا نې دا واپس کړل.نو دا چونکه په مقدار کې کموالې نه دې.په دې وجه به د نقصان تاوان اخستلو سره سود لازميږي.

### په غاصب غلام باندې مزدورۍ کولو سره د نقصان د تاوان حکم

قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا)يو کس غلام غصب کړو.فَاسْتَغَلَّهُ و په اجاره نې ورکړو.فَنَقَصَتْهُ الْغَلَّةُ او د مزدورۍ کار هغه لره ناقص کړو.فَعَلَيْهِ النُّقْصَانُ)لِمَا بَيَّنَّا نو په ده به خالی نقصان واجب وي.په دليل مذکور سره،(



وَيَتَصَدَّقُ بِالْغَلَّةِ) و دده اجرت دې صدقه کړي. قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. وَهَذَا عِنْدَهُمَا أَيْضًا(١) چې دا هم د طرفينو رحمهما الله په نيز دی.

**تشريح:** که غاصب د مغصوب نه څه منافع حاصله کړه.مثلاً مغصوب غلام وو. غاصب هغه په مزدورۍ ورکړو.او د استعمال په وجه هغه کې نقص راغې.نو د نقصان ضمان دې ورکړي.او د ضمان نه روسته چې کومه نفع پاته پاتې شي.هغه دې خيرات کړي.(کله چې مغصوب او وديعت داسې شئ وي. چې هغه اشارې سره متعين کيداې شي.يعني د سامان د ډول څنې وي).دا حکم د طرفينو رحمهما الله په نيز دې.

وَعِنْدَهُ لَا يَتَصَدَّقُ بِالْغَلَّةِ،د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به اجرت نه صدقه کوي. وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا أَجَرَ الْمُسْتَعِيرُ الْمُسْتَعَارَ.هم په دې اختلاف دی.چه کله مستعير مستعار شئ اجاره باندې ورکړو.لِأَبِي يُوسُفَ د امام ابويوسف رحمه الله دليل دا دی.أَنَّهُ حَصَلَ فِي ضَمَانِهِ وَمِلْكِهِ.أَمَّا الضَّمَانُ فَظَاهِرٌ،وَكَذَا الْمِلْكُ،لِأَنَّ الْمَضْمُونَاتِ تُمْلَكُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ مُسْتَنِدًا عِنْدَنَا.

**تشريح: د امام ابويوسف رحمه الله مسلک**۞ د امام ابويوسف رحمه الله په نيز تصديق واجب نه دې.هغه دا فرمائي.چه غاصب ته کومه نفع حاصل شوې ده.هغه دده په ضمان او دده په ملك کې ښکاره شوې ده.په حصول في الضمان خو ښکاره دی.چه مغصوب شئ دده په ضمان کې داخل شو.او حصول في الملك ځکه دې.چه د ضمان ادا کولونه روسته مضمون مملوك کيږي.او ملك د غصب وخت ارخ ته منسوب کيږي.او هر کله چې نفع دده په ملك کې حاصله شوه.نو صدقه کول واجب نه دی.

وَلَهُمَا أَنَّهُ حَصَلَ بِسَبَبٍ خَبِيثٍ وَهُوَ التَّصَرُّفُ فِي مِلْكِ الْغَيْرِ، چې دا د بل په مال کې تصرف کول دی. وَمَا هَذَا حَالُهُ او د کوم چې دا حال وي. فَسَبِيلُهُ التَّصَدُّقُ،د هغې لاره صدقه کول دی.إِذِ الْفَرْعُ يَحْصُلُ عَلَى وَصْفِ الْأَصْلِ ځکه چې د فرع حصول د اصل په صفت باندې وي.وَالْمِلْكُ الْمُسْتَنِدُ نَاقِصٌ او ملك مستند ناقص دې.فَلَا يَنْعَدِمُ بِهِ الْخُبْثُ نو په دې سره به خرابی نه لرې کيږي.

**تشريح: د طرفينو رحمهما الله دليل**۞ طرفين رحمهما الله فرمائي.چه نفع اګرچه دده په ملك کې حاصل شوې ده.خو دده حصول په سبب خبيث يعنی د غير په ملك کې تصرف کاوه سره شوې دې.او کوم شئ چې د سبب خبيث په ذريعه حاصل شی.د هغې لاره هم دا ده.چه خيرات کړې شی.د فقيه ابوالليث رحمه الله بيان دې.چه د امام ابويوسف رحمه الله کوم قول ذکر کړې شو.هغه ړومبې قول دې.او ددوی آخری قول د طرفينو رحمهما الله پشان دې.

(فَلَوْ هَلَكَ الْعَبْدُ فِي يَدِ الْغَاصِبِ حَتَّى ضَمِنَهُ بيا که غلام د غاصب په قبضه کې هلاك شو.تردې چې هغه دده ضامن اوګرځيدو.لَهُ أَنْ يَسْتَعِينَ بِالْغَلَّةِ فِي أَدَاءِ الضَّمَانِ)نو هغه په ضمان ادا کاوه کې اجرت نه کومك اخستې شی.لِأَنَّ الْخُبْثَ لِأَجْلِ الْمَالِكِ،ځکه چې خبث خو د مال په وجه وو.وَلِهَذَا لَوْ أَدَّى إِلَيْهِ هم دا وجه ده.که غاصب هم دا اجرت مالك ته ورکولې.يُبَاحُ لَهُ التَّنَاوُلُ نو هغه لپاره به خوراك جائز وو.فَيَزُولُ الْخُبْثُ بِالْأَدَاءِ إِلَيْهِ،نو هغه ته ادا کاوه سره خبث زائل شو.بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهُ په خلاف دده کله نې چې غلام خرڅ کړو.فَهَلَكَ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي او هغه مشتری سره هلاك شو.ثُمَّ اسْتُحِقَّ بيا هغه مستحق اوګرځيدو.وَغَرَّمَهُ او مشتری تاوان ورکړو.لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَعِينَ بِالْغَلَّةِ فِي أَدَاءِ الثَّمَنِ إِلَيْهِ،نو غاصب بائع د ثمن په ادا کاوه کې اجرت نه کومك نشی اخستلې.لِأَنَّ الْخُبْثَ مَا كَانَ لِحَقِّ الْمُشْتَرِي إِلَّا إِذَا كَانَ لَا يَجِدُ غَيْرَهُ،ځکه چې خبث د مشتری د حق په وجه نه دې.خو دا چې هغه دده نه علاوه هيڅ او نه مومی.لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ،ځکه چې هغه دده محتاج دې.وَلَهُ أَنْ يَصْرِفَهُ إِلَى حَاجَةِ نَفْسِهِ،نو

(١) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا فى ملتقى الأبحر(٨٢\٤) والبحرالرائق (٢٠٣\٨) ورد المحتار (١٣٢\٥) والدرالمنتقى (٨٢\٤) والهندية (١٢٠\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٦١\٢)

بخپل ارتیا کي ئي خرچ کولي شي. فَلَوْأَصَابَ مَالًابیا کله چي هغه ته مال ملاؤ شي. تَصَدَّقَ بِمِثْلِهِ إِنْ كَانَ غَنِيًّا وَقْتَ الِاسْتِعْمَالِ، وَإِنْ كَانَ فَقِيرًانو د هغي په مثل دي صدقه کړي. که په وخت د استعمال توانګر وي. او که فقير وي. فَلَاشَيْءَ عَلَيْهِنو په ده هيڅ نشته. لِمَاذَكَرْنَا

**تشريح:** بيا که مذکوره غلام د غاصب سره هلاك شو. تردي چي ددي د قيمت تاوان ورکول لازم شو. نو هغه په تاوان ادا کاوه کي په دي مزدورئ سره کومك اخستي شي. ځکه چي خبث (خرابتيا) خو د مالك په وجه وه. هم دا وجه ده. که غاصب دا مزدوري مالك ته ورکړي وه. نو ددي ځځه به غاصب ته هم خوراك جائز وو. اګرچه توانګر وي. نو هغه ته ادا کاوه سره خبث ختم شو. پاتي شو ددي په خلاف که غلام ئي خرڅ کړو. او مشتري سره د قبضي نه روسته هلاك شو. بيا مالك خپل استحقاق ثابت کړو. او مشتري نه ئي تاوان واخستلو. نو غاصب بائع په ثمن ادا کاوه کي ددي مزدورئ نه کومك نشي اخستي. ځکه چي په مزدورئ کي کومه خرابتيا ده. هغه د مشتري د حق په وجه نه ده. بلکه د مالك دحق په وجه ده. البته که د غاصب بائع سره ددي مزدورئ نه علاوه هيڅ نه وي. نو بالفعل ددي نه ادا کولي شي. ددي نه روسته چي کله ملاؤ شي. په دي اندازه دي صدقه کړي.

### د مغصوبه څيز د منافعو حکم

قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ أَلْفًا)يوکس زر درهمه غصب کړل. فَاشْتَرَى بِهَا جَارِيَةًپه هغي ئي وينځه واخستله. فَبَاعَهَا بِأَلْفَيْنِاو په دوي (دوه) زره ئي خرڅه کړله. ثُمَّ اشْتَرَى بِالْأَلْفَيْنِ جَارِيَةًبيا ئي په دوي (دوه) زره وينځه واخستله. فَبَاعَهَا بِثَلَاثَةِ آلَافِ دِرْهَمٍاو په دري زره ئي خرڅه کړله. فَإِنَّهُ يَتَصَدَّقُ بِجَمِيعِ الرِّبْحِنو دا پوره نفع دي صدقه کړي. وَهَذَا عِنْدَهُمَا)دا د طرفينو رحمهما الله په نيز دي. وَأَصْلُهُ أَنَّ الْغَاصِبَ أَوِ الْمُودَعَ إِذَا تَصَرَّفَ فِي الْمَغْصُوبِ أَوِ الْوَدِيعَةِاو ددي اصل دا دي. چه کله غاصب او مودع په مغصوب يا وديعت کي تصرف اوکړي. وَرَبِحَاو نفع حاصله کړي. لَا يَطِيبُ لَهُ الرِّبْحُ عِنْدَهُمَانو د طرفينو رحمهما الله په نيز دده لپاره نفع پاکيزه نه وي. خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَپه خلاف د امام ابويوسف رحمه الله، وَقَدْ مَرَّتِ الدَّلَائِلُ دليلونه مخکي تير شوي دي. وَجَوَابُهُمَا فِي الْوَدِيعَةِ أَظْهَرُاو د طرفينو رحمهما الله ځواب د وديعت په صورت کي ښکاره دي. لِأَنَّهُ لَا يَسْتَنِدُ الْمِلْكُ إِلَى مَا قَبْلَ التَّصَرُّفِ لِانْعِدَامِ سَبَبِ الضَّمَانِ ځکه چي د تصرف نه مخکي اړخ ته ملك نه مستند کيږي. د ضمان سبب معدوم کيدو په وجه. فَلَمْ يَكُنِ التَّصَرُّفُ فِي مِلْكِهِنو تصرف پخپل ملك کي نشو.

**تشريح:** زيد د بکر زر درهم غصب کړل. او هم ددي درهمو په عوض ئي يوه وينځه واخستله. او هغه ئي په دوي (دوه) زره کي خرڅه کړله. او د هغي په عوض ئي يوه بله وينځه واخستله. او په دري زره کي ئي خرڅه کړله. نو هغه دي ټوله نفع صدقه کړي. دا حکم د طرفينو رحمهما الله په نيز دي. او د امام شافعي رحمه الله جديد قول او د امام احمد رحمه الله نه هم يو روايت دا دي. او د امام مالك رحمه الله بعض اصحاب هم ددي قائل دي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. د اختلاف اصل بنا (بنياد) دا دي. که غاصب يا مستودع مال مغصوب يا وديعت کي تصرف اوکړو. او د راس المال نه ئي نفع حاصله کړه. نو د طرفينو رحمهما الله په نيز دده لپاره دا نفع پاکيزه نه ده.

**د امام ابويوسف رحمه الله مسلک:** په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله، ددوي په نيز نفع پاکيزه ده.

**د طرفينو رحمهما الله دليل:** بيا د وديعت په صورت کي د طرفينو رحمهما الله دليل ښکاره دي. ځکه چي د صرف نه وړاندي د ملك استناد نه کيږي. ځکه چي سبب د ضمان موجود نه دي. نو تصرف به پخپل ملك کي نه وي. «فيكون الربح خبيثا»

ثُمَّ هَذَا ظَاهِرٌ فِيمَا يَتَعَيَّنُ بِالْإِشَارَةِبيا دا په داسي مال کي خو ښکاره دي. کوم چي اشاره سره متعين کيږي. أَمَّا فِيمَا لَا يَتَعَيَّنُ كَالثَّمَنَيْنِباقي شو هغه مال کوم چي (اشاري سره) نه متعين کيږي. لکه دواړه ثمنونه. فَقَوْلُهُ فِي



الْكِتَابِ اشْتَرَى بِهَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ التَّصَدُّقَ إِنَّمَا يَجِبُ إِذَا اشْتَرَى بِهَانو په کتاب کي دا وئيل،، اِشتری بها،، اشاره ده. دي خبري اړخ ته، چي صدقه کول به هغه وخت واجب وي. کله چي ددي درهمو په عوض واخلي. وَنَقَدَ مِنْهَا الثَّمَنَ. او هم ددي نه ثمن اداکړي.

**تشريح:** بيا نفع پاکيزه نه کيدل په داسي مغصوب مال کي خو ښکاره دي. کوم چي اشاري سره متعين کيږي. لکه چي د عروض او سامان د عقد تعلق هم دي سره وي. تردي که د قبضي نه وړاندي سامان هلاك شي. نو بيع باطليږي. «فيستفيد الرقبة و اليد فى البيع بملك خبث فيتصدق به» پاتي شو داسي مال مغصوب چي هغه اشاري سره متعين کيږي. لکه دواړه ثمنونه، يعني دراهم او دنانير نو په دي اړه کي اختلاف دي. امام محمد رحمه الله چي په جامع صغير کي دا فرمائيلي دي. چه ،، اشترى بها،، دا دي خبري اړخ ته اشاره ده. چه د نفعي صدقه کول هغه وخت ضروري ده. کله چي هم ددي دراهمو په عوض واخلي. او هم ددي نه قيمت ادا کړي. په قول د فخرالاسلام د مذکوره عبارت ظاهر هم په دي دلالت کوي. چه مراد هم دا دي.

أَمَّا إِذَا أَشَارَ إِلَيْهَااو که دي اړخ ته ئي اشاره اوکړله. وَنَقَدَ مِنْ غَيْرِهَااو ثمن ئي ددي نه علاوه ورکړو. أَوْنَقَدَ مِنْهَايا ئي ثمن هم ددي نه ورکړو. وَأَشَارَ إِلَى غَيْرِهَااو اشاره ئي ددي نه علاوه اړخ ته اوکړله. أَوْأَطْلَقَ إِطْلَاقًايا ئي عقد مطلق اوکړو. وَنَقَدَ مِنْهَااو ثمن ئي هم ددي نه ادا کړو. يَطِيبُ لَهُنو نفع به دده لپاره پاکيزه وي. وَهَكَذَا قَالَ الْكَرْخِيُّامام کرخي رحمه الله هم داسي فرمائيلي دي. لِأَنَّ الْإِشَارَةَ إِذَا كَانَتْ لَا تُفِيدُ التَّعْيِينَ ځکه چي کله اشاره مفيد د تعين نه وي. لَا بُدَّ أَنْ يَتَأَكَّدَ بِالنَّقْدِ لِيَتَحَقَّقَ الْخُبْثُ. نو نقد سره مؤکد کيدل ضروري دي. چه خبث متحقق شي.

**تشريح:** اوکه دي دراهمو اړخ ته ئي اشاره اوکړله. او ثمن ئي د نورو دراهمو نه ادا کړل. يا ئي په ثمن کي هم دا دراهم اداکړل. او اشاره ئي ددي نه علاوه اړخ ته اوکړله. يا ئي عقد مطلق اوکړو. چه ما د زرو (درهمو) په عوض واخستلو. او قيمت ئي هم ددي دراهمو نه ادا کړو. نو په دي دريو واړو صورتونو کي به نفع پاکيزه وي. هم دا تفصيلي ځواب د امام کرخي رحمه الله د قول دي. ځکه چي هرکله اشاره مفيد د تعين نشوه. نو د خبث د تحقق لپاره ضروري ده. چه هم ددي دراهمو نه ادا کاوه سره تاکيد اوشي. په تتمه او ذخيره کي دي. چه فتوى د امام کرخي رحمه الله په قول ده.

وَقَالَ مَشَايِخُنَا:او زمونږ مشائخو فرمائيلي دي. لَا يَطِيبُ لَهُ قَبْلَ أَنْ يَضْمَنَ، چي د ضمان نه مخکي وي. وَكَذَا بَعْدَ الضَّمَانِ بِكُلِّ حَالٍ،او که د ضمان نه روسته وي. بهرحال نفع پاکيزه نه ده. وَهُوَ الْمُخْتَارُاو هم دا مختار دي. لِإِطْلَاقِ الْجَوَابِ فِي الْجَامِعَيْنِ وَالْمُضَارَبَةِجامع صغير او کبير او مبسوط کي د ځواب مطلق کيدو په وجه.

**تشريح:** او زمونږ مشائخو وئيلي دي. چه د ضمان ور کاوه نه مخکي وي. يا ددي نه روسته وي. بهرحال په هيڅ صورت کي نفع پاکيزه نه ده. او هم دا قول مختار دي. ځکه چي د جامع صغير، جامع کبير او د مبسوط کتاب په،، کتاب المضارب،، کي د نفع د پاکيزه کيدو حکم مطلق دي. يعني د هيڅ صورت استثناء نشته.

قَالَ (وَإِنِ اشْتَرَى بِالْأَلْفِ جَارِيَةً تُسَاوِي أَلْفَيْنِ)او که د زرو (درهمو) په عوض ئي داسي وينځه واخستله. چه د دوي (دوه) زره (درهمو) برابر ده. فَوَهَبَهَابيا ئي هغه چاته هبه کړله. أَوْطَعَامًايا ئي غله واخستله. فَأَكَلَهُاو وي خوړله. (لَمْ يَتَصَدَّقْ بِشَيْءٍ)نو هيڅ دي نه صدقه کوي. وَهَذَا قَوْلُهُمْ جَمِيعًااو دا ددوي ټولو قول دي. لِأَنَّ الرِّبْحَ إِنَّمَا يَتَبَيَّنُ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ ځکه چي نفع د جنس د اتحاد په وخت ښکاره کيږي.

**تشريح:** اوکه غاصب د مغصوب زر درهمو په عوض داسي وينځه واخستله. چه هغه د دوي (دوه) زره درهمو د قيمت برابر ده. او هغه ئي چاته هبه کړله. يا ئي دهغي په عوض غله واخستله. او هغه ئي اوخوړله. نو هيڅ دي نه صدقه کوي. «بل يرد عليه مثل ما غصب» دا حکم بالاتفاق دي. ځکه چي نفع هغه وخت ښکاره کيږي. کله

چې جنس متحد وي.او مثلاً كه وينځه يا غله ئې د دراهمو په عوض خرڅه كړې وي.نو د زر درهمو نه چې كوم زياتي وي.هغه به ښكاره نفع وه.او دلته كې داسې نه ده.نو نفع ښكاره نشوه.

## فصل فيما يتغير بفعل الغاصب

ژباړه: ( دا) فصل د هغه څيز( په بيان كې ) دې.كوم چې د غاصب په فعل سره متغير كيږي.

### د مغصوبه څيز د بدليدو حكم

قَالَ ﴿وَإِذَا تَغَيَّرَتِ الْعَيْنُ الْمَغْصُوبَةُ بِفِعْلِ الْغَاصِبِ حَتّٰى زَالَ اسْمُهَا وَعِظَمُ مَنَافِعِهَا كله چې متغير شي.عين مغصوب د غاصب په فعل سره، تردې چې د هغې نوم او لوئې منفعت زائل شي. زَالَ مِلْكُ الْمَغْصُوبِ مِنْهُ عَنْهَا نو د هغې سره د مغصوب منه ملك زائل كيږي. وَمَلَكَهَا الْغَاصِبُ و غاصب به ددې مالك وي. وَضَمِنَهَا، وَلَا يَحِلُّ لَهُ الِانْتِفَاعُ بِهَا او ددې به ضامن وي.خو په دې سره به انتفاع حلال نه وي. حَتّٰى يُؤَدِّيَ بَدَلَهَا، كَمَنْ غَصَبَ شَاةً تردې چې ددې عوض ادا كړي.لكه ( مثلاً) يوكس يوه وزه غصب كړله. وَذَبَحَهَا و ذبح ئې كړله. وَشَوَاهَا هغه ئې وورته كړله. أَوْ طَبَخَهَا يا ئې پخه كړله. أَوْ حِنْطَةً يا ئې غنم غصب كړل. فَطَحَنَهَا و اوړه ئې كړل. أَوْ حَدِيدًا يا ئې اوسپنه غصب كړه. فَاتَّخَذَهُ سَيْفًا و د هغې نه ئې توره جوړه كړله. أَوْ صُفْرًا يا ئې پيتل غصب كړل. فَعَمِلَهُ آنِيَةً﴾ و لوخي ئې جوړ كړو. وَهٰذَا كُلُّهُ عِنْدَنَا. دا واړه زموږ په نيز دي.

**تشريح:** غاصب يو شئ غصب كړو.او هغه داسې متغير كړو.چه د هغې نوم او د هغې اكثر مقاصد زائل شو.مثلاً مغصوب وزه وه.هغه ئې ذبح كړله.او وورته ئې كړله.يا ئې پخه كړله.يا غنم وو.هغه ئې اوړه كړل.يا ئې په پټي كې تخم اوكرلو.يا اوسپنه وه.د هغې نه ئې توره جوړه كړله.يا پيتل وو.د هغې نه ئې لوخي جوړ كړو.يا ئې په داسې كې څه داسې تصرف اوكړو.چه د هغې په وجه هغه د غاصب ملك سره داسې ګډ شو.چه دهغې جلا كول ممتنع شو.مثلاً مغصوب د ساګون لرګي (يو ډول مضبوط لرګي لكه نختر) شهتير وو. غاصب دهغې نه عمارت جوړ كړو.

**د احنافو** رحمهم الله **مسلک**⊙ په پورتنو صورتونو كې زموږ په نيز غاصب ددې مالك كيږي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: امام شافعي رحمه الله فرمائي. لَا يَنْقَطِعُ حَقُّ الْمَالِكِ چې د مالك حق به نه منقطع كيږي. وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ،هم دا يو روايت د امام ابويوسف رحمه الله دې. غَيْرَ أَنَّهُ إِذَا اخْتَارَ أَخْذَ الدَّقِيقِ صرف دومره خبره ده.كه مالك اوړه اخستل اختيار كړل. لَا يُضَمِّنُهُ النُّقْصَانَ عِنْدَهُ نو هغه نه نقصان نشي اخستلې.د امام ابويوسف رحمه الله په نيز، لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا،ځكه چې دا به سود ته اورسوي. وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ يُضَمِّنُهُ،او د امام شافعي رحمه الله په نيز اخستلې شي. وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابويوسف رحمه الله نه دا روايت هم دې. أَنَّهُ يَزُولُ مِلْكُهُ عَنْهُ چې په دې سره د مالك ملك زائل كيږي. لٰكِنَّهُ يُبَاعُ فِي دَيْنِهِ او د هغه په قرضه كې به دا خرڅولې شي. وَهُوَ أَحَقُّ بِهِ مِنَ الْغُرَمَاءِ بَعْدَ مَوْتِهِ او د غاصب د مرګ نه روسته د نورو قرضخواهانو په نسبت به مالك ددې زيات حقدار وي.

**تشريح: د امام شافعي** رحمه الله **مسلک**⊙ د امام شافعي رحمه الله په نيز په دې صورتونو كې د اصل مالك حق نه منقطع كيږي.دا يو روايت د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دې.او هم دا د امام احمد رحمه الله قول دې.صرف دومره توپير دې.كه مالك اوړه اخستل اختيار كړي.نو د غاصب نه تاوان نشي اخستلې.ځكه چې دې سره سود لازميږي.او د امام شافعي رحمه الله په نيز نقصان اخستلې شي.او د امام ابويوسف رحمه الله نه يو روايت دا هم دې.چه ددې ځخه به د مالك شئ زائل كيږي.خو كه غاصب مړشي.نو د اصل مالك په قرضه كې به دا شئ خرڅولې شي.مثلاً اوړه به خرڅولې شي.او دهغې په مثل به غنم اخستلې شي.او مالك ته به وركولې شي.او



د نورو قرضخواهانو په نسبت به مالك ددې زيات حقدار وي.

### د امام شافعي رحمه الله دليل

لِلشَّافِعِيِّ د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې. أَنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ چې عين مال پاته دې. فَيَبْقَى عَلَى مِلْكِهِ نو د مالك په ملك به پاته وي. وَتَتْبَعُهُ الصَّنْعَةُ كَمَا إِذَا هَبَّتِ الرِّيحُ فِي الْحِنْطَةِ وَأَلْقَتْهَا فِي طَاحُونَةٍ او صنعت ( كاريګرى ) به ددې تابع وي.لكه (مثلاً) د هوا چپو غنم د بل چا په ميچن كې اوغورځول. فَطُحِنَتْ. او ميچن اوړه كړل. وَلَا مُعْتَبَرَ بِفِعْلِهِ، او د غاصب د فعل هيڅ اعتبار نشته. لِأَنَّهُ مَحْظُورٌ فَلَا يَصْلُحُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ عَلَى مَا عُرِفَ، ځكه چې هغه ممنوع دې.چه د ملك سبب نشي كيدې. فَصَارَ كَمَا إِذَا انْعَدَمَ الْفِعْلُ أَصْلًا نو دا داسې شوه.لكه چې فعل بالكل معدوم وي. وَصَارَ كَمَا إِذَا ذَبَحَ الشَّاةَ الْمَغْصُوبَةَ او داسې شوه.لكه چې مغصوبه وزه ذبح كړي. وَسَلَخَهَا او دهغې څرمنه اوباسي. وَأَرَّبَهَا. او ټكړې ټكړې ئې كړي.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې.چه مغصوبه شئ بعينه پاته دې.نو اصل به دمالك په ملك باندې پاته پاتې وي.پاتې شو د صنعت پيدا كيدل، نو هغه د اصل تابع دې.لكه مثلاً د يوكس په غنمو كې د هوا ځپه اوچليدله.چه هغې غنم اوچت كړل.او د بل كس په ميچن كې ئې اوغورځول.او هغه اوړه شول.نو اوړه د مالك وي.او د غاصب د فعل اعتبار ځكه نشته.چه هغه حرام دې.چه هغه دملك سبب نشي كيدې.لكه چې دامام شافعي رحمه الله د اصول نه دا خبره معلومه ده.چه حرام فعل د نعمت دملك حاصليدو سبب نه جوړيږي.نو ددې فعل كيدل او نه كيدل برابر دى.او دا داسې شوه.لكه چې مغصوبه وزه ذبح كړي.او د هغې څرمن اوكاږي.او اندامونه ئې جلا جلا كړي وي.چه په دې فعل سره غاصب ددې نه مالك كيږي.

وَلَنَا زموږ دليل دا دې. أَنَّهُ أَحْدَثَ صَنْعَةً مُتَقَوِّمَةً چې غاصب يو قيمتي صنعت پيدا كړو. صَيَّرَ حَقَّ الْمَالِكِ هَالِكًا مِنْ وَجْهٍ،نو په يوه وجه ئې د مالك حق بالكل ضائع كړو. أَلَا تَرٰى آيا نه ګورې. أَنَّهُ تَبَدَّلَ الِاسْمُ چې ددې نوم بدل شو. وَفَاتَ مُعْظَمُ الْمَقَاصِدِ او لوئې منفعت ختم شو. وَحَقُّهُ فِي الصَّنْعَةِ قَائِمٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او په صنعت( كاريګرى) كې د غصب حق په هر وجه قائم دې. فَيَتَرَجَّحُ عَلَى الْأَصْلِ الَّذِي هُوَ فَائِتٌ مِنْ وَجْهٍ،نو دې ته به په دې اصل ترجيح وي.چه هغه په يوه وجه فوت شوې وي. وَلَا نَجْعَلُهُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ مَحْظُورٌ،او موږ دا د ملك سبب په دې حيثيت سره نه ګرځوو.چه دا ممنوع دې. بَلْ مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ إِحْدَاثُ الصَّنْعَةِ،بلكه په دې حيثيت سره ئې ګرځوو.چه نوې صنعت پيدا كول دى. بِخِلَافِ الشَّاةِ،په خلاف د وزه لِأَنَّ اسْمَهَا بَاقٍ بَعْدَ الذَّبْحِ وَالسَّلْخِ،ځكه چې ددې نوم پاته دې.د ذبح كاوه او څرمنې اوبنكلو نه روسته هم. وَهٰذَا الْوَجْهُ يَشْمَلُ الْفُصُولَ الْمَذْكُورَةَ او دا وجه ذكر شوو ټولو مسئلو ته ګډ ده. وَيَتَفَرَّعُ عَلَيْهِ غَيْرُهَا او هم په دې نورې مسئلې متفرع كيږي. فَاحْفَظْهُ نو هم دا ياد ساته.

**تسهيل:** زموږ دليل دا دې.چه غاصب په مغصوب كې يو داسې قيمتي صنعت پيدا كړو.چه د هغې په وجه د مالك حق من وجه ختم شو.او په صنعت كې د غاصب حق ثابت دې.نو دې ته به په اصل باندې ترجيح وركولې شي.خو چونكه دده حق من كل وجه پاته دې.په خلاف د اصل مالك، چې د هغه حق من وجه فوت شوې دې.آيا نه ګورې.چه ددې نوم بدل شو.او لوئې منفعت ئې ختم شو.او په دې صنعت كې د غاصب حق هر لحاظ سره قائم دې.نو ده ته به اصل حق باندې ترجيح وي.چه هغه په يوه وجه موجود نه دې.

**دامام شافعي د دليل نه جواب:** اود امام شافعي د دليل نه ځواب دا دې.چه موږ د غاصب فعل ته د ملك سبب په دې وجه نه وايو.چه هغه حرام فعل دې.بلكه په دې لحاظ سره وايو.چه ده يو جديد صنعت پيدا كړې دې.په خلاف د وزه د مسئلې.چه په دې سره نقض نه واردېږي.ځكه زموږ په نيز اصل دا دې.چه كله نوم او لوئې منفعت زائل شي. نو د مالك حق به منقطع كيږي.ګنى نه منقطع كيږي.

### غاصب لپاره د مغصوبه څيز د استعمال حكم

وَقَوْلُهُ وَلَا يَحِلُّ لَهُ الْإِنْتِفَاعُ بِهَا او دا وئيل چې غاصب لپاره ددې نه نفع اخستل حلال نه ده. حَتّٰى يُؤَدِّيَ بَدَلَهَا تر دې چې ددې عوض ادا کړي. اِسْتِحْسَانٌ دا استحسان دې. وَالْقِيَاسُ أَنْ يَكُوْنَ لَهُ ذٰلِكَ قياس دا وو چه دا ده ته حلال وي. وَهُوَ قَوْلُ الْحَسَنِ وَزُفَرَ هم دا د امام حسن او امام زفر رحمهما الله قول دې. وَهٰكَذَا عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ رَوَاهُ الْفَقِيْهُ أَبُو اللَّيْثِ. او دا د امام ابوحنيفه رحمه الله نه نقل دی. چه دا فقيه ابو الليث رحمه الله روايت کړې دی. وَوَجْهُهُ ثُبُوْتُ الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ لِلتَّصَرُّفِ او ددې وجه تصرف لپاره ملك مطلق ثابتول دی. أَلَا تَرٰى آيا نه ګورې. أَنَّهُ لَوْ وَهَبَهُ أَوْ بَاعَهُ جَازَ كه هغه دا شئ هبه يا خرڅ کړي. نو دا جائز دی.

**تشريح:** بيا زموږ په نيز غاصب اګرچه د مغصوب مالك جوړيږي. خو د ضمان ادا كاوه نه وړاندې به دده لپاره انتفاع حلال نه وي. د حسن بن زياد او د امام زفر رحمهما الله په نيز انتفاع حلال ده. د قياس تقاضه هم دا ده. او د امام صاحب رحمه الله نه د فقيه ابو الليث رحمه الله روايت هم دا دې. هم دا وجه ده. چه غاصب لپاره ملك مطلق ثابت شو. نو انتفاع به جائز وي. آيا نه ګورې. كه غاصب دا شئ هبه يا خرڅ کړي. نو جائز دی. ځکه چې هغه په محظور (او ممنوع) وجه ددې مالك شو. نو دا هم داسې ده. لكه چې د بيع فاسد په طريقه مقبوضه څيز، چې ددې بيع صحيح وي.

**فائده** د لذيذ الفتاوی د كتاب الغصب په آخر كي د سمرقند د فتاوی نه نقل دی. چه يو سړی طعام غصب كړو. او هغه ئې په چوپلو هلاك كړو. او تير ئې كړو. نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ده په حلال طريقه تير كړې دې. او د پاكيزه كيدو شرط ددوی په نيز د بدل وجوب دې. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز بدل ادا كول دی. او فتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.

### وجه د استحسان

وَجْهُ الْإِسْتِحْسَانِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وجه د استحسان د نبی كريم ﷺ ارشاد دې. {فِي الشَّاةِ الْمَذْبُوْحَةِ الْمَصْلِيَّةِ بِغَيْرِ رِضَاءِ صَاحِبِهَا د داسې وزه په حق کې چې هغه د مالك د رضامندئ نه بغير ذبح كړې شوې وه. أَطْعِمُوْهَا الْأُسَارٰى}(١) او اورته كړې شوې وه. چه دا قيديانو باندې اوخوروه.

**تشريح:** وجه د استحسان د يو انصاری صحابی رضی الله عنه حديث دې. چه ددې تخريج امام ابوداؤد، امام احمد رحمهما الله او دارقطنی كړې دې. «قال خرجنا مع رسول الله ﷺ في جنازة فرأيت رسول الله ﷺ و هو على القبر يوصي الحافر أوسع من قبل رجليه أوسع من قبل رأسه فلما رجع إستقبله داعي إمرأة فجاء و جيئ بالطعام فوضع يده ثم وضع القوم فأكلوا فنظر آباؤنا رسول الله ﷺ يلوك لقمة في فيه ثم قال إني أجد لحم شاة أخذت بغير إذن أهلها فأرسلت المرأة يا رسول الله ﷺ إني أرسلت إلى البقيع ليشترى لي شاة فلم أجد فأرسلت إلى جار لي قد إشترى شاة أن أرسل إلي بثمنها فلم يوجد فأرسلت إلى إمرأته فأرسلت بها إلي فقال ﷺ أطعميه الأسارى»، يو انصاری صحابی رضی الله عنه فرمائي. چه مونږ د نبی كريم ﷺ سره په يوه جنازه کې اووتلو. نو مونږ ما اوكتل. چې قبر سره اودريدو او قبر كنستونكي ته ئې تعليم وركولو. ښپو اړخ ته لږ نور هم كلاو كړه. سر اړخ ته نور هم كلاو كړه. كله چې دوی ﷺ راواپس شو. نو يوې ښځې اړخ ته رابلونكي راغې. دوی ﷺ هلته تشريف يوړو. خوراك مخې ته راوړلې شو. نو مخكې نبی كريم ﷺ او بيا نورو خلګو لاسونه وړاندې كړل. او خوراك ئې پيل كړو. زموږ مشرانو هغوی اوكتل. چه هغوی هم يوه نوړئ چوپې. (او هغه د حلق نه كښته كيږي) بيا نبی كريم ﷺ اوفرمائيل. داسې معلوميږي. چه داسې وزه ده. چه دا ددې د مالك نه بغير اخستې شوې ده. هغه ښځې يو كس راوليګلو. اې د الله رسوله ﷺ! ما بقيع ته د وزه اخستلو لپاره ليګل اوكړو. نو وزه ملاو نشوه. ما خپل ګاونډي ته يو كس اوليګلو. چه كوم وزه تا اخستې ده. هغه هم په دغه قيمت ما ته راوليګه. هغه ګاونډی هم په كور كې نه وو. نو ما دغه ښځې ته يو كس اوليګلو. هغې وزه ماته راوليګله. نو نبی كريم ﷺ اوفرمائيل. دا غوښه قيديانو بانې اوخوروئ،،

(١) من حديث أبي موسى الأشعري رضی الله عنه أخرجه الطبراني في معجمه الكبير كما ذكره الهيثمي في مجمع الزوائد (١٧٣/٤)۔



**سوال** امام ابوداؤد ددې حديث په اسناد كې جرح كړې ده. فرمائي چه،، عاصم بن كليب عن أبيه عن جده ليس بشئ،،؟

**جواب** د موصوف دا قول هيڅ مضر نه دې. ځكه چې د عاصم دا روايت ،، عن أبيه عن جده،، نه دې بلكه ،، عن أبيه عن رجل من الأنصار،، دې بيا عاصم بن كليب ثقه راوی دې. او دده پلار،، كليب بن شهاب بن الجنون الحجری ،، هم ثقه دې. ابن سعد فرمائيلي دی. ،،ثقة و رأيتهم يستحسنون حديثه و يحتجون به،، ابن حبان هم دې په ثقاتو كې ذكر كړې دې. او امام بخاری رحمه الله په جزء رفع اليدين كې دده نه روايت كړې دې. دا حديث دارقطنی هم روايت كړې دې. ددې په اسناد كې د ،،حميد بن الربيع الخزاز،، په اړه كې ابن الجوزی په التحقيق كې فرمائيلي دی. چه دې كذاب دې. خو صاحب د تنقيح په دې پسې شوې دې. او فرمائيلي ئې دی. چه عثمان ابن ابی شيبه دده توثيق كړې دې. او محمد بن علاء هم دده متابعت كړې دې. (كما رواه ابوداؤد) او دارقطنی دا حديث په طريق د،، عبدالواحد بن زياد عن عاصم بن كليب،، روايت كړې دې. او د عبدالواحد بيان ئې ذكر كړې دې. «قال: قلت لأبي حنيفة رحمه الله من أين أخذت قولك في الرجل بغير إذنه أنه يتصدق بالربح؟ قال أخذته من حديث عاصم بن كليب»،، چې ما د امام ابوحنيفه رحمه الله نه پوښتنه اوكړه. چه تاسو دا مسئله د كوم ځائې نه راويستې ده. چه كوم كس د بل سړي په مال كې د هغه د اجازت نه بغير تصرف اوكړي. او نفع حاصله كړي. نو هغه نفع دې صدقه كړي؟ امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل. چه ما دا مسئله د عاصم بن كليب د حديث نه راويستې ده،،.

"أَفَادَ الْأَمْرُ بِالتَّصَدُّقِ زَوَالَ مِلْكِ الْمَالِكِ وَحُرْمَةَ الْإِنْتِفَاعِ لِلْغَاصِبِ قَبْلَ الْإِرْضَاءِ، د صدقې حكم د مالك د ملك زائل كيدو او راضي كاوه نه وړاندې، غاصب لپاره د انتفاع حرام كيدو فائده وركړله.

**تشريح:** يعنی مذكوره حديث كې د صدقه كاوه حكم نه دوې (دوه) خبرې معلومې شوې. ① يوه دا چې د مالك ملك زائل شو. او غاصب د مغصوبه مال مالك شو. ځكه كه د مالك پاته پاتې كيدو. نو هغوی به د انسان ملك د ابطال نه د بچ كيدو لپاره د واپس كاوه حكم فرمائيلې وو. ② دويمه دا چې د مالك د راضي كاوه نه بغير غاصب لپاره ددې نه انتفاع حرام ده. امام محمد رحمه الله په كتاب الآثار كې د عاصم بن كليب روايت ذكر كاوه نه روسته فرمائيلي دی. «ولو كان هذا اللحم باقياً على ملك مالكه الأول لما أمر به النبي ﷺ أن يطعم الأسارى و لكن لما رآه خرج من ملك الأول وصار مضموناً على الذي أخذه أمر بإطعامه لأن من ضمن شيئاً فصار له من وجه غصب فإن الأولى أن يتصدق به ولا يأكله و كذالك ربحه».

وَلِأَنَّ فِيْ إِبَاحَةِ الْإِنْتِفَاعِ فَتْحُ بَابِ الْغَصْبِ او ځكه چې د انتفاع په جائز كيدو كې د غصب دروازه پرانستل دی. فَيَحْرُمُ قَبْلَ الْإِرْضَاءِ حَسْمًا لِمَادَّةِ الْفَسَادِ نو د راضي كاوه نه وړاندې انتفاع حرام كړې شوه. د فساد ماده د جرړې نه اوښكلو دپاره، وَنَفَاذُ بَيْعِهِ وَهِبَتِهِ مَعَ الْحُرْمَةِ لِقِيَامِ الْمِلْكِ كَمَا فِي الْمِلْكِ الْفَاسِدِ. او د حرمت باوجود ددې بيع او هبه نافذ كيدل، د ملك د قيام په وجه دی. لكه څنګه چې په ملك فاسد كې كيږي.

**تشريح:** دا زموږ عقلی دليل دې. چه د انتفاع د جائز كيدو حكم وركاوه كې د غصب دروازه پرانستل دی. نو د راضي كاوه نه وړاندې انتفاع حرام كړې شوه. چه د فساد د مادې جرړه ختمه شي.

**د امام زفر رحمه الله د قول جواب** د امام زفر رحمه الله د قول «ألا ترى أنه لو وهبه أو باعه جاز» ځواب دا دې. چه ددې د بيع يا هبه نفاذ د حرمت باوجود ځكه كيږي. چه د غاصب ملك موجود دې. لكه څنګه چې په مقبوض بيع فاسد كې كيږي.

وَإِذَا أَدَّى الْبَدَلَ او كله چې غاصب عوض ادا كړو. يُبَاحُ لَهُ نو هغه لپاره جائز دی. لِأَنَّ حَقَّ الْمَالِكِ ځكه چې بدل ادا كاوه سره د مالك حق پوره شو. صَارَ مُوَفًّى بِالْبَدَلِ فَحَصَلَتْ مُبَادَلَةٌ بِالتَّرَاضِيْ، نو خپل منځ كې رضامندئ سره مبادله حاصله شوه. وَكَذٰلِكَ إِذَا أَبْرَأَهُ هم دغه ډول كه مالك ده لره بری كړو. لِسُقُوْطِ حَقِّهِ بِهِ، يا د ابراء په ذريعه دده د حق ساقطولو په وجه، وَكَذَا إِذَا أَدَّى بِالْقَضَاءِ دغه ډول كه غاصب په حكم د قضاء ادا كړو. أَوْ ضَمِنَهُ الْحَاكِمُ أَوْ ضَمِنَهُ

اَلْمَالِكُ لِوُجُوْدِ الرِّضَا مِنْهُ، يا حاكم يا مالك ده لره ضامن كړو. د مالك د رضامندئ موجود كيدو په وجه، لِأَنَّهُ لَا يَقْضِي إِلَّا بِطَلَبِهِ، ځكه چې قاضي به د هغه د طلب كولونه بغير حكم نه كوي.

**تشريح:** دا د صاحب كتاب قول «حتى يؤديها بدلها» ارخ ته راجع دې. او مطلب دا دې، چه كله غاصب دده د مالك حق پوره كړو. او پخپل منځ كې رضامندئ سره مبادله حاصله شوه. دغه ډول كه مالك غاصب برى كړو. بيا هم خوراك جائز دې. ځكه چې په برى كاوه سره د مالك حق ساقط شو. دغه ډول كه غاصب عوض په حكم د قاضي ادا كړو. يا حاكم يا مالك ده لره ضامن كړو. بيا هم خوراك جائز دې. ځكه چې د مالك د اړخه رضا مندي اوموندې شوه. ځكه چې قاضي به دده د مطالبې او دعوه نه بغير حكم نه وركوي.

وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا غَصَبَ حِنْطَةً او هم په دې اختلاف (مبنى) دې. كله ني چې غنم غصب كړل. فَزَرَعَهَا او هغه ني اوكرل. أَوْ نَوَاةً يا ني د كجورو هډوكي غصب كړل. فَغَرَسَهَا او وي كرل. غَيْرَ أَنَّهُ عِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ يُبَاحُ الْاِنْتِفَاعُ فِيْهِمَا قَبْلَ أَدَاءِ الضَّمَانِ لِوُجُوْدِ الْاِسْتِهْلَاكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ، يا صرف دومره خبره ده. چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز په دې دواړو صورتونو كې د ضمان ادا كاوه نه مخكې انتفاع جائز ده. په هره طريقه د استهلاك موجود كيدو په وجه، بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د تيرشوي (صورت او مسئلې). لِقِيَامِ الْعَيْنِ فِيْهِ مِنْ وَجْهٍ ځكه چې دې كې په يوه وجه مال عين پاته دې. وَفِي الْحِنْطَةِ يَزْرَعُهَا لَا يَتَصَدَّقُ بِالْفَضْلِ عِنْدَهُ او د مغصوبه غنمو كرونده كاوه كې به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز زياتي نه صدقه كوي. خِلَافًا لَهُمَا، په خلاف د صاحبينو رحمهما الله، وَأَصْلُهُ مَا تَقَدَّمَ او دده اصل هم هغه دې. كوم چې تير شو.

**تشريح:** د خلاف نه مراد په قول د علامه عيني رحمه الله زمونږ د اصحابو او د امام زفر رحمه الله اختلاف دې. هم داسې اختلاف هغه وخت دې. كله چې يوكس غنم غصب كړل. او د هغې كرونده ئې اوكړله. يا ئې د كجورو هډوكي غصب كړل. او وې كرل. نو د بدل ادا كاوه نه وړاندې به د مغصوب نه انتفاع حلال نه وي. په خلاف د امام زفر او دحسن. البته دومره توپير ضرور دې. چه د امام ابويوسف رحمه الله په نيز په دې دواړو صورتونو كې (يعنى غنم غصب كول او ددې په كرلو كې، او د كجورو هډوكي غصب كول او ددې په كرلو كې) او د ضمان نه وړاندې انتفاع جائز ده. ځكه چې دې دواړو صورتونو كې په هره طريقه د مالك مال هلاك شو. په خلاف د وزه ذبح كولو، او د غنمو د اوړه كاوه د مسئلو، چه په دې كې مال عين په يوه وجه پاته دې. بيا غنم غصب كول او ددې د كرلو په صورت كې چې كوم زياتوالې حاصل شو. هغه به د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نه صدقه كوي. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به صدقه كوي. دليل هم هغه دې. كوم چې مخكې تير شو. «اى عند قوله و من غصب عبداً فاستغلّه»

### د سرو او سپينو زرو د غصب كولو نه روسته د بدليدو حكم

قَالَ (وَإِنْ غَصَبَ فِضَّةً أَوْ ذَهَبًا كه سپين زر يا سره زر ني غصب كړل. فَضَرَبَهَا دَرَاهِمَ أَوْ دَنَانِيْرَ أَوْ آنِيَةً او ددې نه ني دراهم يا دنانير يا لوخي جوړ كړو. لَمْ يَزُلْ مِلْكُ مَالِكِهَا عَنْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو ددې د مالك ملك به نه زائل كيږي. د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. فَيَأْخُذُهَا نو ددې مالك به دا اخلى. وَلَا شَيْءَ لِلْغَاصِبِ، [1]) او غاصب لپاره به هيڅ نه وي.

**تشريح:** كه غاصب سپين زر يا سره زر غصب كړل. او ددې نه ني دراهم يا دنانير ني جوړ كړل. يا ني لوخي جوړ كړل. نو د امام ابوحنيفه او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به ددې نه د مالك ملك نه زائل كيږي. نو مالك به دا اخلى. او غاصب لپاره به څه هم نه وي.

[1]) القول الراجح هوقول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٢٦٤\٨) والكفاية (٢٦٤\٨) وملتقى الأبحر (٨٥\٤) والدر المنتقى (٨٥\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٢\٢)



وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائى. يَمْلِكُهَا الْغَاصِبُ چې غاصب به ددې مالك كيږي. وَعَلَيْهِ مِثْلُهَا) او په ده به ددې مثل واجب وي. لِأَنَّهُ أَحْدَثَ صَنْعَةً مُعْتَبَرَةً ځكه چې ده يو معتبر صنعت (كاريګري) پيدا كړله. صَيَّرَ حَقَّ الْمَالِكِ هَالِكًا مِنْ وَجْهٍ، چې دې د مالك حق په يوه وجه ختم كړو. أَلَا تَرٰى آيا نه ګورې أَنَّهُ كَسَرَهُ چې غاصب دا مات كړل. وَفَاتَتْ بَعْضُ الْمَقَاصِدِ او بعض مقاصد ني ختم شو. وَالتِّبْرُ لَا يَصْلُحُ رَأْسَ الْمَالِ فِي الْمُضَارَبَاتِ وَالشَّرِكَاتِ او بغير سوانچه شوې په مضاربتونو او شركتونو كې د راس المال جوړيدو قابل نه وي. وَالْمَضْرُوْبُ يَصْلُحُ لِذٰلِكَ. او سوانچه شوى ددې قابل وي.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله مسلک۞ صاحبين رحمهما الله فرمائى. چه غاصب به ددې مالك كيږي. او په ده به ددې د مثل تاوان لازم وي.

**د صاحبينو رحمهما الله دليل۞** ځكه چې غاصب په دې كې يو معتبر صنعت يعنى نقصان پيدا كړو. چه دې په يوه وجه د مالك حق ختم كړو. ځكه چې اوس د غاصب دفعل په وجه ددې نوم بدل شو. ځكه چې د سوانچه كاوه نه مخكې دې ته سپين زر او سره زر ونيلې شو. او اوس ورته دراهم او دنانير ونيلې شي. او بعض مقاصد هم ختم شو. چه د سكې نه بغير دا متعين كيداې شو. او اوس نشي متعين كيدې. دغه ډول د سكې نه بغير دا د مضاربت او د شركت راس المال كيدلو قابل نه وو. او اوس ددې قابل شو.

وَلَهُ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. أَنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ، چې مال عين په هرشان پاته دې. أَلَا تَرٰى آيا نه ګورې أَنَّ الْاِسْمَ بَاقٍ چې نوم ني پاته دې. وَمَعْنَاهُ الْأَصْلِيُّ الثَّمَنِيَّةُ وَكَوْنُهُ مَوْزُوْنًا او ددې اصلي معنى ثمن كيدل او وزني كيدل دى. وَأَنَّهُ بَاقٍ حَتّٰى يَجْرِيْ فِيْهِ الرِّبَا بِاعْتِبَارِهِ او دا هم پاته دى. تردې چې په دې كې هم په دې لحاظ سره سود جاري كيږي.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چه مال عين په هرشان پاته دې. ځكه چې هم هغه نوم پاته دې. چه د صنعت نه روسته هم دې ته سره زر او سپين زر ونيلې شي. او ددې اصلي معنى يعنى ثمن كيدل او وزني كيدل هم پاته دى. تردې چې په دې لحاظ سره چې دا موزوني دى. په دې كې سود جاري كيږي. حاصل دا چه سپينو او سروزرو سره متعلق څلور احكام (ثمنيت كيدل، ددې موزون كيدل، د سود جاري كيدل، د زكاة واجبيدل) هم په دې دلالت كوى. چه عين مال په هرشان پاته دې.

### د صاحبينو رحمهما الله د دليل جواب

وَصَلَاحِيَتُهُ لِرَأْسِ الْمَالِ مِنْ أَحْكَامِ الصَّنْعَةِ دُوْنَ الْعَيْنِ، وَكَذَا الصَّنْعَةُ فِيْهَا غَيْرُ مُتَقَوَّمَةٍ مُطْلَقًا، لِأَنَّهُ لَا قِيْمَةَ لَهَا عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا ځكه چې ددې هيڅ قيمت نشته. د خپل جنس په مقابله كې.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول «و التبر لا يصلح راس المال» ځواب دې. چه د راس المال كيدلو صلاحيت د صنعت د احكامو ځني دې. چه دا د مال عين نه يو زياتي شئ دې. نو ددې هيڅ اعتبار نشته. او د «لأنه أحدث صنعة معتبرة» ځواب دا دې. چه په سرو او سپينو زرو كې صنعت على الاطلاق قيمتي نه وي. نو صنعت معتبر نشو. ځكه چې كله سره زر په مقابله د سرو زرو، او سپين زر په مقابله د سپينو زرو كې شي. نو ددې صنعت هيڅ قيمت نه وي. بلكه د سرو زرو په مقابله كې سره زر برابر كيدل پكار دى. ګنى د زياتوالې په صورت كې به سود لازميږي. معلومه شوه. چه د صنعت هيڅ قيمت نشته.

### په مغصوبه لرګو باندې د عمارت جوړولو حكم

قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ سَاجَةً كه يوكس برګې غصب كړل. فَبَنٰى عَلَيْهَا او په دې ني عمارت جوړ كړو. زَالَ مِلْكُ مَالِكِهَا عَنْهَا نو په دې سره به د مالك ملك زائل كيږي. وَلَزِمَ الْغَاصِبَ قِيْمَتُهَا) و په غاصب به ددې قيمت لازم وي. وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لِلْمَالِكِ أَخْذُهَا، امام شافعي رحمه الله فرمائى. چه مالك ته به ددې د اخستلو اختيار وي. وَالْوَجْهُ

مِنَ الْجَانِبَيْنِ قَدَّمْنَاهُ. او د دواړو طرفونو دليل موږ مخکي بيان کړي دي. وَوَجْهٌ آخَرُ لَنَا فِيهِ أَنَّ فِيمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ إِضْرَارًا بِالْغَاصِبِ بِنَقْضِ بِنَائِهِ الْحَاصِلِ مِنْ غَيْرِ خَلَفٍ، او په دې کي دوهم دليل دا دي چه کوم اړخ ته امام شافعي رحمه الله تلي دي هغې کي غاصب ته نقصان رسيږي. د هغه عمارت وړانولو په ذريعه، دڅه عوض نه بغير، وَضَرَرُ الْمَالِكِ فِيمَا ذَهَبْنَا إِلَيْهِ مَجْبُورٌ بِالْقِيمَةِ او د مالك نقصان په دې کي دي. کوم اړخ ته چي موږ تلي يو. چه قيمت سره پوره کړي شو. فَصَارَ كَمَا إِذَا خَاطَ بِالْخَيْطِ الْمَغْصُوبِ بَطْنَ جَارِيَتِهِ أَوْ عَبْدِهِ نو داسي شوه. لکه چي يو کس د مغصوب تار نه د خپلي وينځي يا د غلام نس او ګنډله. أَوْ أَدْخَلَ اللَّوْحَ الْمَغْصُوبَ فِي سَفِينَتِهِ. يا ني مغصوب تخته پخپله کښتۍ کي اولګوله. ثُمَّ قَالَ الْكَرْخِيُّ وَالْفَقِيهُ أَبُو جَعْفَرٍ: بيا امام کرخي او فقيه ابوجعفر هندواني رحمهما الله فرمائيلي دي. إِنَّمَا لَا يُنْقَضُ إِذَا بَنَى فِي حَوَالَيِ السَّاجَةِ، چي عمارت به دې وخت نشي وړانولي. مَا إِذَا بَنَى عَلَى نَفْسِ السَّاجَةِ يُنْقَضُ، لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ. وَجَوَابُ الْكِتَابِ يَرُدُّ ذَلِكَ وَهُوَ الْأَصَحُّ ځکه چي دې کي هغه د حد نه تيريدونکي دي. او د کتاب ځواب دا ردکوي. او دا زيات صحيح دي.

تشريح: که يوکس برګي (کړۍ او لرګي چي په آبادئ کي د چت لپاره استعمالولي شي. ازمترجم) غصب کړلي. او په دې ني عمارت جوړ کړو. نو په دې سره به د مالك ملك زائل کيږي. او په غاصب به ددې قيمت لازم وي. د ائمه ثلاثه رحمهم الله او د امام زفر رحمه الله په نيز مالك ته ددې د اخستلو اختيار دي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د دواړو طرفونو دليل موږ مخکي بيان کړي دي. «أي في أول هذا الفصل في قوله،، و إذ تغيرت العين المغصوبة بفعل الغاصب،،».

قوله ووجه اخر. او زموږ د قول يو دوهم دليل دا هم دي. چه کوم امام شافعي رحمه الله اختيار کړي دي. هغې کي د غاصب نقصان دي. چه دهغه عمارت به وړانولي شي. او هيڅ به نه ملاويږي. او موږ چي کوم صورت اختيار کړي دي. په هغې کي د مالك ضرر او نقصان قيمت سره پوره کولي شي. نو داسي شوه. لکه چي د يوکس د وينځي يا غلام نس شليدلي وي. هغه تار غصب کړو او ټانکي ني اولګولي. يا ني تخته غصب کړله. او پخپله کښتۍ کي ني اولګوله. چه بالاتفاق به د مغصوب تختې راويستلو لپاره د کښتۍ ماتولو او د مغصوب تار راويستلو لپاره به د زخم تراشلو حکم نشي کولي.

سوال: غاصب خو جنايت کونکي دي. او د جنايت کونکي د ضرر هيڅ پرواه نه کيږي. کله چي په دې کي د مجني عليه ضرر دفع کيږي؟

جواب: ټيك ده. خو د جرم کونکي د جنايت نه په علاوه کي خو دده د حق رعايت لحاظ ساتلي کيږي.

سوال: جنايت (اوجرم کونکي) خپل نقصان پخپله اوکړو. چه دي مباشر سبب جوړ شوي دي. چه سره پوهي ني د بل په برګو باندي خپل عمارت جوړ کړو. نو هغه د شفقت مستحق پاتي نشو؟

جواب: دا نه منو. چه ده خپل نقصان پخپله کړي دي. ده خو صرف دومره کړي دي. چه د غير برګي ني پخپل عمارت کي اولګولي. او دا خبره د عمارت د نقض سبب نه دي. بلکه دا خو صرف د مالك د حق د انقطاع سبب دي.

سوال: د نبي کريم ﷺ ارشاد «من وجد عين ماله فهو احق به» ددې خبرې ښکاره دليل دي. چه برګي په عمارت کي داخلولو سره د مالك حق منقطع نشو. ځکه چي هغه ته خپل عين مال ملاويږي؟

جواب: د حديث د موجب خو موږ قائل يو. خو دلته کي مالك خپل عين مال او نه موندلو. ځکه چي برګي خو په يو لحاظ سره ضائع شوي. «فصار ملكاً للغاصب».

فائده: که په مغصوب تار سره ني د غير ماکول زخم اوګنډلو. نو په دې اړه کي د امام شافعي او د امام احمد رحمهما الله دوي (دوه) قوله دي. ① يو دا چي دا تار واپس کول ضروري دي. ② دوهم دا چي دده حق به په قيمت سره منتقل کيږي په مغني حنابله کي دي. «فإن خاط به جرح حيوان محترم لا يحل أكله كالآدمي و البغل و الحمار الأهلي و خيف التلف بنزعه لم يجب النزع لأنه إضرار لصاحبه ولا يزال الضرر بالضرر وكان الحيوان للغاصب و قال القاضي يجب نزعه و رده وقال



أبو الخطاب فيه وجهان أحدهما هذا والثاني لا،، که په تار سره د يو داسي محترم حيوان زخم اوګنډلو. چه دهغې خوراك حلال نه دي. لکه سړي، خچر، ساتونکي خر، او په تار اوښکلو سره د هلاکيدو خطره وي. نو اوښکل واجب نه دي. ځکه چي دې کي مالك ته نقصان رسيږي. حالانکه د يو ضرر ازاله په بل ضرر سره نشي کولي. اوس به دا حيوان (څاروي) د غاصب وي. قاضي حنبلي فرمائيلي دي. چه تار اوښکل او واپس کول ضروري دي. او ابوالخطاب فرمائيلي دي. چه په دې اړه کي دوي (دوه) امله دي. يو هم دا او دويمه دا چي ضروري نه دي.

## د بل کس د اوښ، وزه وغيره د نقصان حکم

قَالَ (وَمَنْ ذَبَحَ شَاةَ غَيْرِهِ) او که د بل چا وزه ني ذبح کړله. فَمَالِكُهَا بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهَا نو مالك ته اختيار دي. که غواړي. ددې د قيمت دې ضامن کړي. وَسَلَّمَهَا إِلَيْهِ، او مذبوحه دې هغه ته ورکړي. وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ نُقْصَانَهَا او که غواړي. ددې د نقصان دې ضامن کړي. وَكَذَا الْجَزُورُ، هم دغه ډول اوښ وغيره دي. وَكَذَا إِذَا قَطَعَ يَدَهَا) دغه ډول که ددې لاسونه کټ کړي.

تشريح: که يوکس د بل چا وزه د هغه د اجازت نه بغير ذبح کړله. نو مالك ته اختيار دي. که غواړي. هغه نه دې د وزه د قيمت تاوان واخلي. او ذبح کړې شوې وزه دې هغه ته ورکړي. او که غواړي. ذبح کړې شوې غوښه دې پخپله واخلي. او هغه نه دې نقصان واخلي. يعني د مذبوحه او ژوندئ په قيمت کي چي کوم توپير وي. هغه نقصان دې واخلي. هم دا حکم د ،، جزور،، دي. جزور هغه اوښ يا اوښې ته وائي. چه هغه د ذبح لپاره تياره کړې شي.

سوال: کله چي د وزه دا حکم ذکرکړې شو. چه مالك ته د قيمت د ضمان، او د نقصان د ضمان اختيار دي. نو بيا د جزور ذکر کاوه ته څه اړتيا دي؟

جواب: ددې په ذکر کاوه سره يوه شبه دفع کول مقصود دي. کوم چي د نقصان ضمان اختيارولو باندي وارديږي. او هغه دا چي د وزه په ذبح کاوه کي کوم نقصان دي. هغه په دې سبب سره دي. چه په وزه کي کوم د پيو او نسل صلاحيت وو. ذابح هغه فوت کړو. او جزور خو هسې هم د ذبح لپاره وي. نو په دې کي شيدې او نسل مقصود نه وي. نو غاصب د نقصان ضامن کول پکار نه دي. بلکه هغه ته خو د ذبح کاوه اجرت ملاويدل پکار دي. چه د مالك کوم مقصود وو. هغه ده پوره کړو. صاحب د کتاب «و كذا الجزور» زياتي کړو. او دا شبه ني دفع کړله. او وې ښودل. چه د جزور په ذبح کاوه کي هم دا حکم دي. ځکه چي د څاروی زندګی ختمول آيا څه کم نقصان دي؟ ځکه چي شيدې او نسل نه علاوه د مالك نور ډير مقاصد کيداې شي. نو مالك ته به اختيار وي.

هَذَا هُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ. ظاهر الرواية هم دا دي. وَجْهُهُ أَنَّهُ إِتْلَافٌ مِنْ وَجْهٍ بِاعْتِبَارِ فَوْتِ بَعْضِ الْأَغْرَاضِ مِنَ الْحَمْلِ وَالدَّرِّ وَالنَّسْلِ او ددې وجه دا ده. چه په يوه وجه هلاکول دي. په دې لحاظ سره چي بوج اوړل، شيدې اونسل وغيره بعض مقاصد ختم شو. وَبَقَاءِ بَعْضِهَا او بعض پاته دي. وَهُوَ اللَّحْمُ فَصَارَ كَالْخَرْقِ الْفَاحِشِ فِي الثَّوْبِ، او هغه غوښه ده. په کپړه کي د غټې سوړې کاوه پشان شو.

تشريح: ددې تصريح په ذريعه د حسن ابن زياد د روايت نه احتراز دي. چه د مذبوحه وزه ساتلو په صورت کي ضمان نشي اخستلې. او خرمن اوښکل په وزه کي يوډول زياتوالي دي. ددې مطلب دا دي. چه ده د غوښې نه فائده اخستل ډير آسان کړل. د ظاهرالرواية وجه دا ده. چه د وزه نه مختلف منافع حاصليږي. مثلاً شيدې څکل، نسل زياتول، غوښه خوړل وغيره، او د ذبح نه روسته څه منافع پاته دي. او څه فوت شو. په دې وجه به مالك ته دواړه اختياره وي. لکه څنګه چي په کپړه کي غټه سوړه کاوه سره مالك ته د ضمان يا نقصان اختيار وي.

وَلَوْ كَانَتِ الدَّابَّةُ غَيْرَ مَأْكُولِ اللَّحْمِ او كه حيوان (څاروی) داسې وي چه د هغې غوښه نشي خوړلی. فَقَطَعَ الْغَاصِبُ طَرَفَهَا او غاصب د هغې لاس يا خپه كټ كړي. لِلْمَالِكِ أَنْ يُضَمِّنَهُ جَمِيعَ قِيمَتِهَا لِوُجُودِ الْاسْتِهْلَاكِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو مالك ته اختيار دې چه د هغه نه پوره قيمت تاوان واخلي، په هر شان د ضائع كيدلو موجود كيدو په وجه.

**تشريح:** اوكه دا حيوان (څاروی) داسې وي چه ددې غوښه نشي خوړلې كيدې. او غاصب ددې لاسونه يا پښې كټ كړي، نومالك ته به اختيار وي چه دده نه پوره تاوان واخلي. كله چې د لاسونو او پښو كټ كاوه نه روسته ددې هيڅ منفعت او قيمت پاته پاتې نشي. چه په دې صورت كې په هر شان ضائع كيدل اوموندې شو. كه د لاسونو پښو كټ كاوه نه روسته ددې څه قيمت وي. نو مالك ته به اختيار وي. چه دا واخلي. او نقصان هم واخلي. لكه چې په منتقى كې د امام محمد رحمه الله نه د هشام روايت منقول دې. «في رجل قطع يد حمار او رجله وكان لا بقي قيمته فله أن يمسك و يأخذ النقصان».

بِخِلَافِ قَطْعِ طَرَفِ الْعَبْدِ الْمَمْلُوكِ په خلاف د كټ كولو د لاس دغلام مملوک حَيْثُ يَأْخُذُهُ مَعَ أَرْشِ الْمَقْطُوعِ؛ چې هغه دا د مقطوع جرمانې سره اخستلې شي. لِأَنَّ الْآدَمِيَّ يَبْقَى مُنْتَفَعًا بِهِ بَعْدَ قَطْعِ الطَّرَفِ ځكه چې سړې د لاس پښو كټ كيدو نه روسته هم قابل د انتفاع وي.

**تشريح:** دا د مخكنې قول «للمالك ان يضمنه جميع القيمة» سره متعلق دې. يعنی كه د مملوك كوم لاس يا پښې ئې كټ كړلې، نو د كټ شوی اندام جرمانې سره هغه مملوك اخستې شي. ځكه چې سړې د لاس پښو كټ كاوه نه روسته هم ددې قابل وي چه ددې نه نفع واخستلې شي. په خلاف د څاروی، چې ددې نه د بار وړلو، او خوړيدلو وغيره كومه فائده مقصود وي. هغه د لاس كټ كاوه نه روسته ددې فائدې قابله پاتې نشوه.

### د بل كس په كپړې كښې د نقصان حكم

قَالَ (وَمَنْ خَرَقَ ثَوْبَ غَيْرِهِ خَرْقًا يَسِيرًا) كه يوكس د بل په كپړه كې معمولی شان سوړه اوكړله. ضَمِنَ نُقْصَانَهُ نو هغه به د نقصان ضامن وي. وَالثَّوْبُ لِمَالِكِهِ) او كپړه به ددې د مالك وي. لِأَنَّ الْعَيْنَ قَائِمٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ، ځكه چې مال عين په هرشان قائم دې. وَإِنَّمَا دَخَلَهُ عَيْبٌ صرف په دې كې نقصان پيدا شو. فَيُضَمِّنُهُ نو د نقصان به ضامن وي.

**تشريح:** كه يوكس د بل په كپړه كې معمولی سوړه اوكړله. نو عين مال چونكه په هرشان قائم دې. صرف په دې كې يو عيب راغې. په دې وجه به هغه د نقصان ضامن وي. او كپړه به د مالك په ملك كې پاتې كيږي.

(وَإِنْ خَرَقَ خَرْقًا كَبِيرًا يُبْطِلُ عَامَّةَ مَنَافِعِهِ) و كه غټه سوړه ئې اوكړله. چه په دې سره ددې اكثر منافع ختم شو. فَلِمَالِكِهِ أَنْ يُضَمِّنَهُ جَمِيعَ قِيمَتِهِ) نو مالك دده نه پوره قيمت تاوان اخستې شي. لِأَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ مِنْ هَذَا الْوَجْهِ ځكه چې په دې طريقه دا هلاكول دی. فَكَأَنَّهُ أَحْرَقَهُ. نو گويا چې ده كپړه اوسوزوله. قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. مَعْنَاهُ يَتْرُكُ الثَّوْبَ عَلَيْهِ: ددې مطلب دا دې چه كپړه دې هم دده سره پريږدی. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الثَّوْبَ وَضَمَّنَهُ النُّقْصَانَ، او كه غواړی. كپړه دې واخلي. او نقصان دې واخلي. لِأَنَّهُ تَعْيِيبٌ مِنْ وَجْهٍ مِنْ حَيْثُ إِنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ، ځكه چې دا په يوه وجه عيب دار كول دی چه عين كپړه پاته ده. وَكَذَا بَعْضُ الْمَنَافِعِ قَائِمٌ، دغه ډول بعض منافع هم قائم دی.

**تشريح:** او كه غټه سوړه ئې اوكړله چه هغې سره د كپړې اكثر منافع ختم شو. نو مالك ته به اختيار وي. چه هغه دده نه د پوره قيمت تاوان واخلي. ځكه چې دې لحاظ سره دده دا فعل هلاكول دی. گويا چې ده كپړه اوسوزوله. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی چه د ابو الحسين قدوری رحمه الله دقول «فلمالكه ان يضمنه جميع قيمته» مطلب دا دې. كه غواړی. كپړه دې هم دده سره پريږدی او قيمت دې واخلي. او كه غواړی. كپړه دې واخلي. او د



هغه نه دې د نقصان تاوان واخلي. ځكه چې دا يو لحاظ سره عيب دار كول دی. چه عين كپړه سره د بعضو منافعو پاته ده.

ثُمَّ إِشَارَةُ الْكِتَابِ إِلَى أَنَّ الْفَاحِشَ مَا يُبْطِلُ بِهِ عَامَّةَ الْمَنَافِعِ بيا د كتاب ارشاد دې. چه غټه سوړه هغه ده. چه هغې سره اكثر منافع باطل شي. وَالصَّحِيحُ أَنَّ الْفَاحِشَ مَا يُفَوِّتُ بِهِ بَعْضُ الْعَيْنِ وَجِنْسُ الْمَنْفَعَةِ او صحيح دا ده. چه غټه سوړه هغه ده. چه هغې سره بعض عين او جنس منفعت فوت شي. وَيَبْقَى بَعْضُ الْعَيْنِ وَبَعْضُ الْمَنْفَعَةِ، او بعض عين او بعض منفعت پاته پاتې شي. وَالْيَسِيرُ مَا لَا يُفَوِّتُ بِهِ شَيْءٌ مِنَ الْمَنْفَعَةِ او معمولی سوړه هغه ده. چه هغې سره هيڅ منافع فوت نشي. وَإِنَّمَا يَدْخُلُ فِيهِ النُّقْصَانُ صرف نقصان راشي. لِأَنَّ مُحَمَّدًا جَعَلَ فِي الْأَصْلِ قَطْعَ الثَّوْبِ نُقْصَانًا فَاحِشًا ځكه چې امام محمد رحمه الله په اصل يعنی مبسوط كې كپړه پرې كول فاحش نقصان گرځولې دې. وَالْفَائِتُ بِهِ بَعْضُ الْمَنَافِعِ حالانكه په دې سره بعض منافع پاته دی.

**تشريح:** په كپړه كې د معمولی سوړې او غټې سوړې په منځ كې حد څه دې؟ په دې اړه كې د متاخرينو اختلاف دې. په فتاوی صغری كې د بعضو قول منقول دې. كه د په سوړې سره د قيمت د څلورمې برخې (حصې) يا ددې نه د زيات نقصان آوشو. نو دا زيات دې. گنې معمولی دې. او بعضو د نيم قيمت نقصان ته زيات وئيلی دی. او ددې نه كم ته ئې معمولی وئيلی دی. او بعضو وئيلی دی. كه دا كپړه په سوړې كاوه سره د هيڅ اغوستلو قابله پاتې نشي. نو دا غټه سوړه ده. گنې معمولی ده.

تاج الشريعة د امام رضی الدين نيشاپوری رحمه الله قول نقل كړې دې. چه په گنډلو شوو كپړو كې زياته سوړه دا ده. چه په دې سره د منځنی درجې خلگ ددې په اغوستلو سره شرم محسوسوی. او كومه چې ددې نه كمه وي. هغه معمولی ده. او په نه گنډلوشوو كټ شوو كپړو كې غټه سوړه دا ده. چه د كوم ډول لباس گنډلو لپاره كپړه اخستلې شوې وه. د هغې گنډل بې ځايه پيوند راوستلو نه بغير ممكن نه وي. او معمولی سوړه ددې خلاف ده. او په خصائل كې ذكر دی. چه كومه سوړه د اغوستلو په منفعت كې خلل نه پيدا كوی. هغه معمولی دې. اوكه خلل پيدا كوی. نو هغه زيات دې.

علامه مرغينانی رحمه الله فرمائی. چه د كتاب مختصر القدوری اشاره دا ده. چه غټه او زياته سوړه هغې ته وائی. چه هغې سره اكثر منافع باطل شي. خو صحيح قول دا دې. چه غټه سوړه هغه ده. چه هغې سره بعض عين اوبعض منفعت زائل شي. (په دې طريقه چې د سوړې نه وړاندې هغه د كوټ لائق وه. د سوړې نه روسته ددې قابل پاتې نشوه. البته د قميص قابله ده). او بعض عين او بعض منفعت پاته پاتې شي. او معمولی سوړه هغه ده. چه هغې سره هيڅ منافع هم زائل نشي. بلكه په كپړه كې صرف نقصان راشي. ځكه چې امام محمد رحمه الله په اصل يعنی مبسوط كې كپړې شلولو ته زيات نقصان وئيلی دی. حالانكه په دې سره صرف بعض منافع زائل شوی دی. ددې اكثر منافع نه دی فوت شوی.

### په مغصوبه مځكه كښې د عمارت او ونو وغيره حكم

قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ أَرْضًا) چا چه مځكه غصب كړله. فَغَرَسَ فِيهَا او په دې كې ئې وُنې اولگولې. أَوْ بَنَى يا ئې عمارت جوړ كړو. قِيلَ لَهُ نو ده ته به وئيلې شي. اقْلَعِ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ چې عمارت او وُنې لرې كړه. وَرُدَّهَا) او مځكه واپس كړه. لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ" د نبی كريم ﷺ د ارشاد په وجه چه،، {لَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ}(1) د ظالم د رگ لپاره هيڅ حق نشته،،

**تشريح:** كه يوكس د بل چا مځكه غصب كړله. او په هغې كې ئې وُنې اولگولې. يا ئې عمارت جوړ كړو. نو هغه

(1) من حديث سعيد بن زيد رضي الله عنه أخرجه ابوداود فى الخراج والإمارة باب ۳۷ رقم۳۰۷۳ والترمذی فى الأحكام بباب ۳۹ والنسائى فى السنن الكبرى (۴۰۵۱۳) رقم ۵۷۶۱ وأحمد فى المسند(۳۲۷۱۵)_

نه به ونیلې شي.چه خپل عمارت وران کړه.او ونې اوباسه.او خالي مځکه واپس کړه.ځکه د نبي کريمﷺ ارشاد دی. «ليس لعرق ظالم حق» دا حديث د حضرت سعيد بن زيد، يوصحابي (غالباً ابوسعيد)، حضرت عائشه، عباده بن الصامت، عبدالله بن عمرو بن العاص، حضرت عمرو بن عوف مزني رضي الله عنه نه نقل دي.

① د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه د حديث تخريج ابوداؤد او ترمذي کړېدی. «قال رسول اللهﷺ من أحى أرضاً ميتة فهي لـه و ليس لعرق ظالم حق»، نبي کريمﷺ ارشاد اوفرمائيلو: چا چي مړه مځکه ژوندۍ کړله.هغه به هغه لپاره وي.او د ظالم د رګ لپاره هيڅ حق نشته،. ② د يوسړي (غالباً ابوسعيد رضي الله عنه) د حديث تخريج هم ابوداؤد د هغې پشان کړې دي. ③ د عائشه رضي الله عنها دحديث تخريج ابوداؤد طيالسي، دارقطني، بزاز او طبراني کړې دي. «قالت قال رسول اللهﷺ البلاد بلاد الله و العباد عباد الله و من أحى من موات الأرض شيئاً فهو له و ليس لعرق ظالم حق» «قال أنه من قضاء رسول اللهﷺ أنه ليس لعرق ظالم حق» ④ د عمرو بن عوف رضي الله عنه د حديث تخريج ابن راهويه، بزاز، طبراني او ابن عدي کړې دي. «أنه سمع النبيﷺ يقول من أحى أرضاً مواتاً من غير أن يكون فيها حق مسلم فهي له و ليس لعرق ظالم حق». ⑤ د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د حديث تخريج طبراني کړې دي. «من أحى أرضاً».

امام ابوداؤد د هشام بن عروه نه د،، عرق ظالم،، (د ظالم د رګ) تفسير داسې کړې دی. «العرق الظالم أن يغرس الرجل في أرض غيره فيستحقها بذالك»،، د ظالم د رګ نه مراد دا دی.چه يوکس د بل په مځکه کي د استحقاق نه بغير ونې اولګوي.او غواړي.چه په دې ذريعه مستحق شي.امام مالك رحمه الله فرمائي. «العرق الظالم كل ما أخذوا احتفر و غرس بغير حق»

> "وَلِأَنَّ مِلْكَ صَاحِبِ الْأَرْضِ بَاقٍ،او ځکه چي د زمکې د مالك ملك پاته دی.فَإِنَّ الْأَرْضَ لَمْ تَصِرْ مُسْتَهْلَكَةً،ځکه چي مځکه هلاکيدونکې نه وي.

**تشريح:** دوهم دليل دا دی.چه د زمکې د مالك ملك پاته دی.ځکه چي مځکه څوك نشي هلاکولی.او په مځکه کي د غصب تحقق نه کيږي.حالانکه ملك لپاره څه نا څه سبب ضرور وي.چه هغه دلته کي موجود نه دی.نو کوم کس چي مځکه بوخت کړې ده.هغه ته به حکم ورکولی شي.چه مځکه خالي کړي.لکه مثلاً يو کس د بل په لوخي کي خپله غله واچوي.نو هغه ته به د لوخي خالي کاوه حکم ورکولی شي.

> وَالْغَصْبُ لَا يَتَحَقَّقُ فِيهَا،او په مځکه کي غصب نه متحقق کيږي. وَلَا بُدَّ لِلْمِلْكِ مِنْ سَبَبٍ،حالانکه ملك لپاره د يو سبب کيدل ضروري دی. فَيُؤْمَرُ الشَّاغِلُ بِتَفْرِيغِهَا، كَمَا إِذَا شَغَلَ ظَرْفَ غَيْرِهِ بِطَعَامِهِ،نو بوخت کونکي ته به د خالي کاوه حکم ورکولی شي.لکه چي يوکس د بل په لوخي کي خپل خوراك واچوي.

**تشريح:** سوال: په دې وهم کيږي.چه دا تعليل د مسئلې د وضع منافي دی.چه د مسئلې په وضع کي مفروض هم دا ده.چه د زمکې غصب متحقق دی. «فإنه قال ومن غصب أرضاً»؟

دا دی.چه د مسئلې په وضع کي د غصب د لفظ نه مراد ددې لغوي معنی ده.او په تعليل کي د کوم غصب د تحقق نفي ده.هغه شرعي غصب دی. «فلا منافاة» (نو څه منافات نشته)

صاحب د غاية البيان فرمائي.چه په زير بحث مسئله کي د غير په مځکه باندې قبضه اچول، چونکه صورتاً غصب دی.په دې وجه ئې دا غصب سره تعبير کړو.لکه څنګه چي آيت کي دی. «وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا» (لأنه تصوّر بصورة الملائكة)

> فَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ تَنْقُصُ بِقَلْعِ ذَلِكَ او كه په مځکه کي دده په ورانولو سره نقصان راځي. فَلِلْمَالِكِ أَنْ يَضْمَنَ لَهُ قِيمَةَ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ مَقْلُوعًا نو مالك ته به اختيار وي.چه هغه ورکړي غاصب ته، د وران عمارت او د اوښکلي شوي ونو قيمت، وَيَكُونَانِ لَهُ او دا دواړه شيان به د مالك شي. لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لَهُمَا وَدَفْعَ الضَّرَرِ عَنْهُمَا. ځکه چي دې کي د دواړو رعايت او په دې دواړو کي دفع د ضرر ده.

**تشريح:** بيا كه په عمارت ورانولو يا په ونو اوښکلو کي زمکې ته نقصان رسيږي.نو مالك ته به اختيار وي.چه



هغه غاصب ته د وران شوي عمارت او د اوښکلې شوې ونو په حساب سره قيمت ورکړي.نو دا دواړه شيان به د مالك شي.ځکه چي داسې کاوه کي د دواړو رعايت دی.او دواړو نه ضرر دفع کول دي.ځکه چي غاصب د عمارت ورانولو او د ونو اوښکلو نه منع کاوه کي پخپله د هغه ضرر دی.ځکه چي هغه څ د هغه عين مال دی.او د هغې ورانولو او اوښکلو سره خالي مځکه مالك ته سپارلو کي د مالك ضرر دی. «و قد قالﷺ لا ضرر و لا ضرار في الإسلام».

> وَقَوْلُهُ قِيمَتَهُ مَقْلُوعًا مَعْنَاهُ قِيمَةُ بِنَاءٍ أَوْ شَجَرٍ يُؤْمَرُ بِقَلْعِهِ او د،، مقلوعاً،، مطلب دا دی.چه د داسې عماريت يا ونو قيمت ورکړي.د کومو چي د اورانولو حکم ورکړې شوې دی. لِأَنَّ حَقَّهُ فِيهِ،ځکه چي د غاصب حق هم په دې کي دی. إِذْ لَا قَرَارَ لَهُ فِيهِ فَتُقَوَّمُ الْأَرْضُ بِدُونِ الشَّجَرِ وَالْبِنَاءِ،ځکه چي دده لپاره په مځکه کي قائم پاتې کيدل نشته.نو د زمکې او د عمارت نه بغير قيمت به اولګولی شي. وَتُقَوَّمُ وَبِهَا شَجَرٌ أَوْ بِنَاءٌ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ أَنْ يَأْمُرَهُ بِقَلْعِهِ،بيا د زمکې قيمت سره د داسې ونو او عمارت اندازه کړې شي.چه د هغې په حق کي مالك ته د اوښکلو اختيار دی. فَيَضْمَنُ فَضْلَ مَا بَيْنَهُمَا نو په دې دواړو قيمتونو کي چي کوم توپير وي.د هغې به ضامن وي.

**تشريح:** په کتاب کي چي دا ونيلي شوي دي.چه د اوښکلو شوو او ورانولو په حساب سره دې ورکړي.ددې مطلب دا دی.چه د داسې عمارت او ونو قيمت دې ورکړي.دکومو د ورانولو او اوښکلو چي حکم ورکړې شوې دی.ځکه چي د غاصب حق هم دومره دی.ځکه چي هغه لپاره په مځکه کي د برقرار ساتلو حکم نشته.اوس ددې طريقه دا ده.چه مځکي د زمکې قيمت د عمارت او ونو نه بغير اولګولې شي.بيا عمارت او ونو سره ددې د قيمت اندازه اوکړې شي.چه کوم توپير راشي.هغه دې د زمکې مالك غاصب ته ورکړي.

### د مغصوبه کپړې رنګ بدلول يا د خيز د نقصان حکم

> قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ ثَوْبًا يوکس کپړه غصب کړله. فَصَبَغَهُ أَحْمَرَ او سور رنګ ئې ورکړو. أَوْ سَوِيقًا يا ئې ستوان غصب کړل. فَلَتَّهُ بِسَمْنٍ او په غوړو کي ئې ملاؤ کړل. فَصَاحِبُهُ بِالْخِيَارِ، نو مالك ته اختيار دی. إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ ثَوْبٍ أَبْيَضَ كه غواړي.د سپينې کپړې قيمت وَمِثْلَ السَّوِيقِ وَسَلَّمَهُ لِلْغَاصِبِ، او هم هغه شان ستوان دې واخلي.او کپړه او ستوان دې غاصب ته ورکړي. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَهُمَا وکه غواړي.هم دا دې واخلي وَغَرِمَ مَا زَادَ الصَّبْغُ وَالسَّمْنُ فِيهِمَا) و کوم رنګ او غوړو سره چي زياتوالې راغلې دی. د هغې معاوضه دې ورکړي.

**تشريح:** كه يوکس د بل چا کپړه غصب کړله.او سور رنګ ئې ورکړو.يا ئې ستوان غصب کړل.هغې کي ئې غوړي ملاؤ کړل.نو مالك ته اختيار دی.كه غواړي.د سپينې کپړې د قيمت تاوان او د خپلو ستوانو په مثل ستوان دې واخلي.او دا کپړه او ستوان دې غاصب ته ورکړي.او كه غواړي.دا دواړه دې واخلي.په رنګ او غوړو سره چي کوم زياتوالې شوې دی.هغه دې ورکړي.د رنګ په مسئله کي د امام مالك رحمه الله په نيز هم دا حکم دی.

> وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي الثَّوْبِ:امام شافعي رحمه الله د کپړو په اړه کي فرمائي. لِصَاحِبِهِ أَنْ يُمْسِكَهُ چي مالك ته اختيار دی.چه هغه دا خان سره اوساتي. وَيَأْمُرَ الْغَاصِبَ بِقَلْعِ الصَّبْغِ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ اعْتِبَارًا بِفَصْلِ السَّاحَةِ بَنَى فِيهَا،او غاصب ته دې په ممکن اندازه د رنګ خلاصولو حکم اوکړي.په هغه مځکه قياس کاوه سره په کوم کي چي عمارت جوړ شوې وي. لِأَنَّ التَّمْيِيزَ مُمْكِنٌ،ځکه چي جدا کول ممکن دی. بِخِلَافِ السَّمْنِ فِي السَّوِيقِ، لِأَنَّ التَّمْيِيزَ مُتَعَذِّرٌ. په خلاف د غوړو د ستوانو، چي غوړي جلا کول متعذر دی.

**تشريح:** **د امام شافعي رحمه الله مسلك** امام شافعي رحمه الله د کپړې په مسئله کي فرمائي.چه د کپړې مالك ته اختيار دی.چه خپله کپړه خان سره اوساتي.او غاصب ته اووائي.چه ترکومه پورې ممکن وي.خپل رنګ خلاص کړه.

**د امام شافعي رحمه الله قياس** دوی دا په مځکه باندې قياس کړې دی.په کومه کي چي ونې لګولې وي.يا ئې

عمارت جوړ کړي وي. ځکه چي دلته کي جلا کول ممکن دي. په خلاف د ستوانو، چي ددي نه غوړي اوښکل نا ممکن دي. په وجيز او شرح وجيز کي دي. که د رنګ قيمت د کپړي د قيمت برابر وي. نو هغوی دواړه به په دي کي شريك وي. خرڅ دي کړي. او ثمن دي خپل منځ کي ويش کړي. حليه کي دي. که د کپړي مالك د رنګ لري کاوه مطالبه اوکړله. او غاصب ددي نه منع شو. نو په دي کي دوي (دوه) امله دی. ① يوه دا چي دي به نشي مجبوره کولي. د ابو العباس قول هم دا دي. ② دويمه دا چي مجبور کولي به شي. ابن حيران او ابو اسحاق ددي قائل دی.

> وَلَنَا مَا بَيَّنَّا أَنَّ فِيهِ رِعَايَةَ الْجَانِبَيْنِ: زموږ دليل هغه دي. کوم چي موږ بيان کړي دي. چه په دي کي د دواړو طرفونو رعايت دي. وَالْخِيَرَةُ لِصَاحِبِ الثَّوْبِ لِكَوْنِهِ صَاحِبَ الْأَصْلِ، او د کپړي مالك ته اختيار دده د صاحب اصل کيدو په وجه دي. بِخِلَافِ السَّاحَةِ بَنَى فِيهَا: په خلاف د زمکي په کوم کي ني چي عمارت جوړ کړي دي. لِأَنَّ النَّقْضَ لَهُ بَعْدَ النَّقْضِ: ځکه چي ملبه (متيريل يعني خښتي او لرګي وغيره) به د ماتولو نه روسته ملاويږي. أَمَّا الصِّبْغُ: پاتي شو رنګ فَيَتَلَاشَى: نو هغه به بربادېږي. وَبِخِلَافِ مَا إِذَا انْصَبَغَ بِهُبُوبِ الرِّيحِ: او په خلاف ددي کله چي د هوا په چپو سره کپړه رنګداره شي. لِأَنَّهُ لَا جِنَايَةَ مِنْ صَاحِبِ الصِّبْغِ لِيَضْمَنَ الثَّوْبَ: نو د رنګ کونکي هيڅ قصور (جرم) نه دي. چه هغه د کپړي ضامن اوګرځولي شي. فَيَتَمَلَّكُ صَاحِبُ الْأَصْلِ الصِّبْغَ: نو کپړي والا به د رنګ مالك وي.

**تشريح:** زموږ دليل هم هغه دي. کوم چي وړاندي بيان شوي دي. چه په مذکوره حکم کي د دواړو طرفونو رعايت دي. او د کپړي مالك ته اختيار ځکه ورکړي شو. چه اصل يعني د کپړي مالك هم هغه دي. په خلاف د زمکي والا مسئلي، ځکه چي د عمارت وړانولو نه روسته غاصب ته ملبه (متيريل) يعني خښتي او لرګي وغيره ملاويږي. او رنګ د لري کاوه نه روسته بربادېږي. په دي وجه غاصب ته د رنګ لري کاوه حکم ورنکړي شو. چه د هغه حق فوت نشي. په خلاف ددي که د هوا په چپو سره کپړه اوچته شوه. او په رنګ کي پريوتله او رنګينه شوه. نو اختيار به نه وي. ځکه چي دي صورت کي د رنګ والا هيڅ جرم نشته. تردي چي هغه ضامن اوګرځولي شي. نو کپړي والا به د رنګ قيمت ور کاوه سره ددي مالك کيږي.

### د کپړي رنګ کولو د ضمان حکم

> قَالَ أَبُو عِصْمَةَ فِي أَصْلِ الْمَسْأَلَةِ: ابوعصمه په اصل مسئله کي فرمانيلي دی. وَإِنْ شَاءَ رَبُّ الثَّوْبِ: که د کپړي والا اوغواړي. بَاعَهُ: نو کپړه دي وپلوري. وَيَضْرِبُ بِقِيمَتِهِ أَبْيَضَ: اوس به ددي په ثمن کي هغه د خپلي سپيني کپړي په حساب سره برخه دار وي. وَصَاحِبُ الصِّبْغِ بِمَا زَادَ الصِّبْغُ فِيهِ: او رنګ کونکي (غاصب) به د رنګ د زياتوالی په حساب سره حقدار وي. لِأَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَتَمَلَّكَ الصِّبْغَ بِالْقِيمَةِ: ځکه د کپړي مالك ته اختيار دي. چه د قيمت په عوض د رنګ مالك نشی. وَعِنْدَ امْتِنَاعِهِ تَعَيَّنَ رِعَايَةُ الْجَانِبَيْنِ فِي الْبَيْعِ: او دده د منع کيدو په صورت کي د بيع په طريقه د دواړو طرفونو رعايت متعين دي.

**تشريح:** شيخ ابوعصمه سعد بن معاذ مروزي رحمه الله (چي د ابراهيم بن يوسف رحمه الله شاګردي. او هغه د امام ابويوسف رحمه الله شاګر دي) په اصل مسئله يعني «لو من غصب ثوبا فصبغه احمر» کي وئيلي دی. چه د کپړي مالك ته اختيار هم شته. چه هغه کپړه وپلوري. اوس به ددي په ثمن کي د کپړي مالك د خپلي سپيني کپړي په حساب سره برخه دار وی. او د رنګ مالك به د رنګ د زياتوالی په حساب سره حقدار وی. ځکه د کپړي مالك ته دا اختيار دي. چه قيمت ورکړي. او د رنګ ملکيت منظور نکړي.

> وَيَتَأَتَّى هَذَا فِيمَا إِذَا انْصَبَغَ الثَّوْبُ بِنَفْسِهِ: او دا قول په دي صورت کي هم جاري کيږي. کله چي کپړه پخپله رنګ کړي شوي وي.



**تشريح:** خو د شيخ ابوعصمه رحمه الله مذکوره قول صرف په اصلي مسئله کي نه دي. بلکه هغه صورت کي هم دي. کله چي د کپړي رنګ کونکی د څه فعل نه بغير پخپله رنګ شوي وی. ځکه چي دي صورت کي به دده ته اختيار نه وی. چه هغه د رنګ کونکی د څه جرم نه کيدلو باوجود تاوان واخلی. نو هر کله چي د کپړي مالك د کپړي ملکيت نه منع شو. او په زبردستئ سره د رنګ کونکی ضامن جوړول متعذر شو. نو ده ته د خپل حق وصولولو لپاره د بيع طريقه متعين شوه. کله چي د کپړي مالك د رنګ قيمت ور کاوه سره د رنګ په ملکيت راضی نه دي. پاتي شو د غصب صورت نو په دي کي که د کپړي مالك د رنګ د ملکيت نه منع شي. نو د حق وصولولو لپاره د بيع طريقه متعين نه ده. «لأن له تضمين الغاصب بالثوب الأبيض».

> وَقَدْ ظَهَرَ بِمَا ذَكَرْنَا الْوَجْهُ فِي السَّوِيقِ، غَيْرَ أَنَّ السَّوِيقَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ: او په ذکر شوی بيان کي ښکاره شوي وه د ستوانو په مسئله کي، سوا ددي نه چي ستوان دَ مثلی څيزونو څني وی. فَيَضْمَنُ مِثْلَهُ: نو ددي د مثل به ضامن وی. وَالثَّوْبُ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ: او کپړه د ذوات القيم څني ده. فَيَضْمَنُ قِيمَتَهُ. نو ددي به د قيمت ضامن وی.

**تشريح:** په مسئله د رنګ کيدو او رنګ کاوه کي مذکوره بيان سره د ستوانو د مسئلي حکم او ددي وجه هم ښکاره شوه. يعني ستوان په غوړو کي ملاوولو، يا پخپله ملاويدو کي هم دا دليل جاری دي. او په دي کي هم د شيخ ابوعصمه قول چليدي شی. صرف دومره توپير دي. چه ستوان د مثلی څيزونو څني دي. نو ددي په مثل به تاوان ورکوی. او کپړه د داسي څيزونو څني ده. چه ددي تاون په قيمت سره وی. نو ددي د قيمت به ضامن وی.

> وَقَالَ فِي الْأَصْلِ: او په اصل يعني مبسوط کي ئې فرمانيلی دی. يَضْمَنُ قِيمَةَ السَّوِيقِ، چي د ستوانو د قيمت به ضامن وی. لِأَنَّ السَّوِيقَ يَتَفَاوَتُ بِالْقَلْيِ: ځکه چي اورتولو سره ستوان مختلف کيږی. فَلَمْ يَبْقَ مِثْلِيًّا. نو هغه مثلی پاته پاتی نشو. وَقِيلَ الْمُرَادُ مِنْهُ الْمِثْلُ سَمَّاهُ بِهِ لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ، او وئيلي شوی دی. چه د قيمت نه مراد مثل دي. قيمت ځکه وئيلي شوي دي. چه هغه ددي قائم مقام وی. وَالصُّفْرَةُ كَالْحُمْرَةِ. او زيړ رنګ د سور پشان دي.

**تشريح:** پورته معلومه شوه. چه د ستوانو په مسئله کي به د ستوانو د مثل تاوان ورکوی. خو په اصل يعني مبسوط کي ذکر دی. چه د ستوانو د قيمت به ضامن وی. ځکه چي اورتولو سره په ستوانو کي تفاوت راځی. نو هغه مثلی نه پاتي کيږی. شيخ علاؤالدين اسبيجابی رحمه الله فرمانی. چه هم دا صحيح ده. ځکه چي ستوان د اورتو غنمو د اجزاء نوم دي. او د اورتولو په وجه غنم د ذوات الامثال کيدو نه اوځی. او بعض مشائخو وئيلی دی. چي مبسوط کي د قيمت نه مراد مثل دي. امام محمد رحمه الله دا قيمت سره ځکه تعبير کړي دي. چه مثل د مغصوب قائم مقام دي.

> وَلَوْ صَبَغَهُ أَسْوَدَ: او که تور رنګ ئې ورکړو. فَهُوَ نُقْصَانٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ: نو دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نقصان دي. وَعِنْدَهُمَا زِيَادَةٌ. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز زياتوالي دي.

**تشريح:** که غاصب مغصوب کپړي ته تور رنګ ورکړو. نو دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نقصان دي. نو مالك د کپړي غاصب ته د څه ور کاوه نه بغير خپله کپړه اخستي شی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د سور او زيړ رنګ پشان تور رنګ هم زياتوالي دي. «فيجزئ فيه ما يجزئ فيهما».

> وَقِيلَ هَذَا اخْتِلَافُ عَصْرٍ وَزَمَانٍ. او وئيلی شوی دی. چه دا صرف اختلاف د عصر او زماني دي.

**تشريح:** بعض مشائخو وئيلی دی. چه د تور رنګ د نقصان يا زياتوالی په اړه کي اختلاف صرف د خپلي زماني اختلاف دي. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په زمانه کي بنوامية حاکم وو. چه هغه به د تور رنګ نه نفرت کوو. او په دي وجه د تور رنګ بې قدري وه. او د صاحبينو رحمهما الله په دورکي بنوعباس حاکم وو. چه هغوی به تور رنګ خوښولو. چه په دي سره د تور رنګ قدر وو. نو هر امام پخپل وخت کي د تور رنګ په اړه کي کوم څه اوکتل. د هغي مطابق ئې حکم ورکړو. نو اوس هم چي کوم ځائي کي ددي رنګ قدر يا نا قدري وی. هلته

به د هغې موافق حکم ورکولې شي.

**فائده:** مخکې امام ابویوسف رحمه الله هم ددې قائل وو. کوم چې د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې. خو کله چې هغه قاضی مقرر شو. او د تورو کپړو اغوستلو حکم ورکړې شو. نو هغه ددې په قائل کیدو مجبوره شو. چه تور والې هم یو زیاتوالې او اضافه ده. دا هم منقول دی. چه هارون الرشید د کپړو د رنګ په اړه کې هغوی سره مشوره اوکړله. نو هغوی اوفرمائیل. «اللون ما یکتب به کتاب الله». دا خواب هارون الرشید ډیر زیات خوښ کړو. او تور رنګ نې اختیار کړو. «و تبعه من بعده».

**وَقِيلَ** او ونیلې شوی دی. **إِنْ كَانَ ثَوْبًا يَنْقُصُهُ السَّوَادُ** که داسې کپړه وی. چه هغې ته په تور رنګ سره نقصان رسیږی. **فَهُوَ نُقْصَانٌ**. نو دا نقصان دې. **وَإِنْ كَانَ ثَوْبًا يَزِيدُ فِيهِ السَّوَادُ** او که کپړه داسې وی. چه هغې کې تور رنګ سره زیاتوالې رسیږی. **فَهُوَ كَالْحُمْرَةِ** نو هغه پشان د سور رنګ دې. **وَقَدْ عُرِفَ فِي غَيْرِ هَذَا الْمَوْضِعِ**. او دا خبره په بله موقع معلومه شوې ده.

**تشریح:** او بعضو دا هم ونیلې دی. که کپړه داسې وی. چه هغې ته تور رنګ سره نقصان رسیږی. نو دا رنګ به نقصان ګنړلې شی. او که کپړه داسې وی. چه په تور رنګ سره ددې قیمت زیاتیږی. نو هغه به د تور رنګ پشان زیاتوالې ګنړلې شی. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائی. چه دا خبره ددې موقع نه علاوه په شرح مختصرالکرخي وغیره کې مبسوط کتابونو کې معلومه شوې ده. حاصل دا چې په دې مسئله کې حقیقی اختلاف نشته. بلکه د هر زمانې عادت (او رواج) اړخ ته راجع دې. ابو الحسین قدوری رحمه الله په شرح مختصر الکرخي کې هم داسې ذکر کړی دی.

**وَلَوْ كَانَ ثَوْبًا تَنْقُصُهُ الْحُمْرَةُ بِأَنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ ثَلَاثِينَ دِرْهَمًا** او که داسې کپړه وی. چه هغې کې سور والی سره نقصان راځی. په دې طریقه چې ددې قیمت دیرش درهمه وو. **فَتَرَاجَعَتْ بِالصَّبْغِ إِلَى عِشْرِينَ**. او د سور رنګ ور کاوه په وجه شل درهمه کم پاتې شو. **فَعَنْ مُحَمَّدٍ** نو د امام محمد رحمه الله نه روایت دې. **أَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَى ثَوْبٍ تَزِيدُ فِيهِ الْحُمْرَةُ**، چې داسې کپړې ته دې اوکتلې شی. چه هغې کې سور والی سره قیمت زیاتیږی. **فَإِنْ كَانَتِ الزِّيَادَةُ خَمْسَةً** نو که زیاتوالې پنځه درهمه وی. **يَأْخُذُ ثَوْبَهُ وَخَمْسَةَ دَرَاهِمَ** نو خپلې کپړې او پنځه درهمه به اخلی. **لِأَنَّ إِحْدَى الْخَمْسَتَيْنِ جُبِرَتْ بِالصَّبْغِ** ځکه چې هر دوې (دوه) پنځو کې یو نقصان د رنګ په وجه پوره شو.

**تشریح:** او کومه کپړه چې داسې وی. چه هغې کې سور رنګ سره نقصان راځی. مثلاً د هغې قیمت دیرش درهمه وو. او د سور رنګ په وجه کم شو. او شل درهمه شو. نو د امام محمد رحمه الله نه د هشام روایت دې. چه داسې کپړه دې اوکتلې شی. چه هغې کې سوروالی سره قیمت زیاتیږی. نو که زیاتوالې مثلاً پنځه درهم وی. نو مالك دې خپله کپړه او پنځه درهم واخلی. ځکه چې مالك د لسو درهمو د نقصان حقدار دې. او رنګدار د پنځو درهمو د رنګ د قیمت حقدار دې. نو د پنځو په مقابله کې د پنځو مقاصه اوشوه. نو پاته نقصان یعنی پنځه درهمه په واپس اخلی.

### غصب سره متعلق متفرق مسئلې

**(فَصْلٌ)**: **وَمَنْ غَصَبَ عَيْنًا** یو کس مال عین غصب کړو. **فَغَيَّبَهَا** او غائب نې کړو. **فَضَمَّنَهُ الْمَالِكُ قِيمَتَهَا** او مالك د هغې د قیمت تاوان واخستلو. **مَلَكَهَا** نو غاصب به د هغې مالك وی. **وَهَذَا عِنْدَنَا**. دا زمونږ په نیز دی. **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ**: امام شافعی رحمه الله فرمائی. **لَا يَمْلِكُهَا** چې هغه به ددې نه مالك کیږی. **لِأَنَّ الْغَصْبَ عُدْوَانٌ مَحْضٌ** ځکه چې غصب خو خالص ظلم دې. **فَلَا يَصْلُحُ سَبَبًا لِلْمِلْكِ كَمَا فِي الْمُدَبَّرِ**. نو هغه د ملك سبب نشی کیدې. لکه په مدبر کې.

**تشریح:** که غاصب یو څیز غصب کړو. او هغه نې غائب کړو. او مالك ته نې دهغې د قیمت تاوان ورکړو. نو زمونږ او د امام مالك رحمه الله په نیز به غاصب ددې مالك کیږی.



**د امام شافعی رحمه الله مسلک او دلیل:** د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله په نیز نه مالك کیږی. دوی دا فرمائی چه غصب خالص ظلم دې. چه دا د نعمت د ملك سبب نشی کیدې. لکه یو مدبر غلام غصب کړی او غائب نې کړی. او د هغه د قیمت تاوان ورکړی. نو هغه بالاتفاق د هغه نه مالك کیږی. وجه دا ده. چه ملك مشروع دې. او غصب غیر مشروع دې. او کوم امر چې غیر مشروع وی. هغه د مشروع حاصلیدو سبب نه جوړیږی.

**وَلَنَا** زمونږ دلیل دا دې. **أَنَّهُ مَلَكَ الْبَدَلَ بِكَمَالِهِ**، چې مالك د پوره عوض مالك شو. **وَالْمُبْدَلُ قَابِلٌ لِلنَّقْلِ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ** او مبدل داسې شئ دې. چه د یو ملك نه بل ملك اړخ ته د منتقل کیدو قابل دې. **فَيَمْلِكُهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ**، نو غاصب به ددې مالك کیږی. د هغه د ضرر لرې کاوه دپاره. **بِخِلَافِ الْمُدَبَّرِ لِأَنَّهُ غَيْرُ قَابِلٍ لِلنَّقْلِ لِحَقِّ الْمُدَبَّرِ** په خلاف د مدبر، چه هغه د مدبر د حق په وجه د نقل قابل نه دې.

**تشریح:** زمونږ دلیل دا دې. چه مالك د مغصوب شئ د بدل یعنی ددې د قیمت په کمال طریقه مالك شو او کوم سړې چې د بدل مالك کیږی. نو مبدل د هغه د ملك نه خارجیږی. او د صاحب بدل په ملکیت کې داخلیږی. چه د بدل د مالك نقصان لازم نشی. البته ددې لپاره دا ضروری ده. چه په مبدل کې د یوملك نه بل ملك اړخ ته د منتقل کیدو صلاحیت وی. او دلته کې دا شرط موجود دې. یعنی مبدل قابل د نقل دیګ. په خلاف د مدبر، چې هغه قابل د نقل نه دیګ...فا فترقا...

**نَعَمْ قَدْ يُفْسَخُ التَّدْبِيرُ بِالْقَضَاءِ** البته کله کله د قاضی د حکم په وجه تدبیر فسخ کولې شی. **لَكِنَّ الْبَيْعَ بَعْدَهُ يُصَادِفُ الْقِنَّ** خو ددې نه روسته کیدونکې بیع به په خالص مملوك باندې واقع کیږی.

**سوال:** دا د یو اشکال خواب دې. اشکال دا دې. چه قابل د نقل خو مدبر هم دې. که آقا دې خرڅ کړی. او مشتری د مدبر سپارلو مخاصمه اوکړی. او قاضی دده د بیع د جواز فیصله ورکړی. نو بیع جائز او تدبیر فسخ کیږی. او مشتری دا مدبر اخلی ؟

**جواب:** حاصل د خواب دا دې. چه آو خبره هم دا ده. چه کله داسې کیږی. چه د قاضی په حکم سره مدبر کیدل فسخ کولې شی. خو ددې نه روسته چې کومه بیع واقع کیږی. هغه په خالص مملوك باندې واقع کیږی. نو دا مدبر نقل کول نشو. بلکه نقل د قن (نقل د خالص غلام) شو.

**فائده:** صاحب د عنایه رحمه الله د کلام د شرح نه روسته لیکلی دی. چه د علامه مرغینانی رحمه الله کلام دې اړخ ته اشاره کوی. چه د ملك سبب هم هغه غصب دې. ګنی د امام شافعی رحمه الله د اړخه به مذکوره تعلیل نا مناسب وی. د قاضی ابوزید دبوسی رحمه الله مذهب هم دا دې. لکه چې موصوف په کتاب الاسرار کې زمونږ د عالمانو قول ذکر کړې دې. چه د قضاء بالضمان یا د تراضی په وخت غصب مفید د ملك وی. خو شمس الائمه په مبسوط کې ونیلې دی. چه دا په وهم مبنی دې. ځکه چې د ضمان ادا کاوه په وخت غاصب لپاره د غصب د وخت نه ملك په حقیقت کې نه ثابتیږی. په دې وجه د مغصوب شئ زوائد هغه ته نه سپارلې کیږی. که د ملك سبب غصب وو. نو ددې سبب په ذریعه د ملك تام کیدو نه روسته غاصب د متصل او منفصل زواندو هم مالك کیږی. حالانکه داسې نه ده.

خو بعضو حضراتو ددې خواب ورکړې دې. چه د ضمان ادا کاوه په وخت غصب د ملك د سبب کیدو دا مطلب نه دې. چه هغه علی الاطلاق موجب دملك وی. بلکه ددې د ملك سبب کیدل په طریقه د اسناد وی. چه دا من وجه ثابت او من وجه غیر ثابت وی. په دې وجه به په منفصله زواندو کې ددې هیڅ اثر نه وی.

### د مغصوبه څیز په قیمت کښې د مالك او غاصب د قول حکم

**قَالَ** **(وَالْقَوْلُ فِي الْقِيمَةِ قَوْلُ الْغَاصِبِ مَعَ يَمِينِهِ)** او د قیمت په اړه کې به قول د غاصب مقبول وی. دده په قسم سره، **لِأَنَّ الْمَالِكَ يَدَّعِي الزِّيَادَةَ** ځکه چې مالك د زیاتوالی مدعی دې. **وَهُوَ يُنْكِرُ**، او غاصب ددې انکار کوی. **وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ يَمِينِهِ** او قول د منکر مقبول وی. دده په قسم سره. **(إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْمَالِكُ الْبَيِّنَةَ بِأَكْثَرَ مِنْ**

(ذٰلِكَ) خو که مالك بينه قائم کړي، ددې نه د زياتو، لِاَنَّهُ اَثْبَتَهُ بِالْحُجَّةِ الْمُلْزِمَةِ. ځکه چې ده حجتِ ملزمه سره ثابت کړې دې.

**تشريح:** که د مالك او غاصب په منځ کې د قيمت په اړه کې اختلاف وی.نو د غاصب قول به سره دده د قسم مقبول وی.ځکه چې مالك د زياتوالی مدعی دې.او غاصب ددې منکر دې.او قول د منکر معتبر وی. سره د هغه د قسم نه.البته که مالك ددې نه په زيات قيمت باندې ګواهان قائم کړي.نو دده بينه به مقبول وی.ځکه چې ده په حجتِ ملزمه سره ثابته کړله.

**فائده**⊙که مالك د ګواهانو قائمولو نه عاجز شی.او د غاصب نه د قسم مطالبه اوکړي.حالانکه غاصب سره داسې ګواهان موجود دی.چه هغه د مغصوب د قيمت لپاره ګواهی ورکوی.نو د غاصب بينه به نه قبليږي. بلکه د هغه ځخه به قسم اخستلې شی.ځکه چې دده بينه د زياتوالی نفی کوی.او کوم بينه چې په نفی باندې وی. هغه نه قبليږي.بيا بعضو مشائخو ونيلی دی.چه د قسم د اسقاط لپاره د غاصب ګواهان قبليدل پکار دی. لکه چې مودع که د وديعت دعوه اوکړي.نو د هغه قول قبليږي.او که هغه په دې باندې ګواهان قائم کړي.نو ګواهان هم قبلولې شی.قاضی ابوعلی نسفی رحمه الله فرمائی.چه دا مسئله مشکله شمارلې شوې ده.او بعضو مشائخو په دې دواړو کې توپير کړې دې.او دا خصومت ختم شو.پاتې شو غاصب نو په ده باندې دلته کې قسم او قيمت دوې (دوه) شيان لازم دی.او په ګواهانو قائمولو سره صرف قسم ساقط شوې دې.نو غاصب د مودع په معنی کې نه دې.

قَالَ (فَإِنْ ظَهَرَتِ الْعَيْنُ) بيا که عين مال ښکاره شو. (وَقِيمَتُهَا أَكْثَرُ مِمَّا ضَمِنَ) او حال دا چې دهغې قيمت ددې نه زيات دې.کوم چې غاصب تاوان ورکړو. (وَقَدْ ضَمِنَهَا بِقَوْلِ الْمَالِكِ) او هغه ددې ضامن د مالك په ونيلو، (أَوْ بِبَيِّنَةٍ أَقَامَهَا أَوْ بِنُكُولِ الْغَاصِبِ عَنِ الْيَمِينِ) يا ددې بينه قائمولو، يا د قسم نه د غاصب انکار کاوه سره شوې وو. (فَلَا خِيَارَ لِلْمَالِكِ) نو مالك لپاره به هيڅ اختيار نه وی. (وَهُوَ لِلْغَاصِبِ) او دا شئ به د غاصب وی. لِاَنَّهُ تَمَّ لَهُ الْمِلْكُ بِسَبَبٍ اتَّصَلَ بِهِ رِضَا الْمَالِكِ.ځکه چې غاصب لپاره ملك په داسې سبب سره پوره شو.چه دې سره د مالك رضامندی متصل ده. حَيْثُ ادَّعَى هٰذَا الْمِقْدَارَ. ځکه چې ده ددې مقدار دعوه کړې وه. قَالَ (فَإِنْ كَانَ ضَمِنَهُ بِقَوْلِ الْغَاصِبِ مَعَ يَمِينِهِ) او که مالك د غاصب قول سره د قسم باندې تاوان اخستې وی. (فَهُوَ بِالْخِيَارِ) نو هغه ته به اختيار وی. (إِنْ شَاءَ أَمْضَى الضَّمَانَ) که غواړي.مذکوره تاوان دې جائز اوګرځوی. (وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْعَيْنَ وَرَدَّ الْعِوَضَ) او که غواړي.مال عين دې واخلی.اوعوض دې واپس کړي. لِاَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ رِضَاهُ بِهٰذَا الْمِقْدَارِ ځکه چې دې مقدار سره دده رضامندی نه وه پوره شوې. حَيْثُ يَدَّعِي الزِّيَادَةَ ځکه چې دې د زياتو مدعی وو. وَأَخْذُهُ دُونَهَا لِعَدَمِ الْحُجَّةِ. او د زياتوالی نه بغير اخستل د حجت نه کيدو په وجه وو.

**تشريح:** بيا که دا مغصوب شئ په څه وخت کې ښکاره شو.او د هغې قيمت د هغه مقدار نه زيات دې.دکوم چې غاصب تاوان ورکړې دې.او تاوان ئې هم د مالك د قول مطابق، يا دده د ګواهانو مطابق، يا د خپل قسم نه د انکار په سبب سره ورکړې دې.نو مغصوب شئ به د غاصب مملوك وی.او مالك ته به ددې اختيار نه وی.ځکه چې مالك هم ددې مقدارمدعی وو.او په دې راضی شوې وو.او که غاصب د خپل قول موافق قسم خوړلې وی.او تاوان ئې ورکړې وی.نو مالك ته به اختيار وی.که غواړي.مغصوب شئ دې واخلی.د هغې ضمان دې واپس کړي.اوکه غواړي.هم دا ضمان دې برقرار اوساتی.ځکه چې دې مقدار سره دده رضامندی نه وه پوره شوې.ځکه چې دې د زيات مدعی وو.او د زياتوالی نه بغير اخستل، صرف په دې وجه وو.چه دده سره ګواهان نه وو.نو رضامندی ثابته نشوه.

وَلَوْ ظَهَرَتِ الْعَيْنُ وَقِيمَتُهَا مِثْلُ مَا ضَمِنَهُ او که مال عين ښکاره شو.په داسې حال کې چې ددې قيمت د هغې برابر



دې.کوم چې غاصب ادا کړې دې. أَوْ دُونَهُ فِي هٰذَا الْفَصْلِ الْأَخِيرِ يا د هغې نه کم دی.په دې آخری صورت کې فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ خو ځواب هم هغه شان دې.په ظاهر الرواية کې ، وَهُوَ الْأَصَحُّ او هم دا زيات صحيح دې. خِلَافًا لِمَا قَالَهُ الْكَرْخِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ په خلاف ددې کوم چې امام کرخی رحمه الله فرمائيلی دی. أَنَّهُ لَا خِيَارَ لَهُ، چې مالك لپاره اختيار نشته. لِاَنَّهُ لَمْ يَتِمَّ رِضَاهُ ځکه چې دده رضامندی نه ده پوره شوې. حَيْثُ لَمْ يُعْطَ لَهُ مَا يَدَّعِيهِ ددې مطلب دا دې.چه هغه ته هغه ورنکړې شو.د کوم چې هغه دعوه کوله. وَالْخِيَارُ لِفَوَاتِ الرِّضَا او د اختيار کيدل د رضا فوت کيدو په وجه دې.

**تشريح:** او که قسم سره د غاصب په ونيلو باندې د تاوان اخستلو په صورت کې کله مال ښکاره شو.او ددې قيمت د هغه مقدار برابر دې.کوم چې غاصب ادا کړې وو.يا دهغې نه کم دې.نو د امام کرخی رحمه الله په نيز مالك ته د واپس اخستلو اختيار نشته.ځکه چې مالك ته دده د ملك پوره بدل ملاؤ شو.خو په ظاهرالرواية کې ده ته اختيار شته.که غواړي.مال عين دې واپس واخلی.تاوان دې واپس اوګرځوی.او هم دا اصح دې.ځکه چې اصلِ مبسوط کې مطلقاً هم دا ذکر دې.دغه ډول امام طحاوی رحمه الله هم روايت مطلق ذکر کړې دې.وجه دا ده.چه د مالك رضامندی پوره نشوه.ځکه چې د مالك کومه دعوه وه.هغه ده ته ورنکړې شوه.او اختيار ځکه حاصل شو.چه دده رضامندی پوره نشوه.په دې وجه نه چې ددې قيمت پوره نه دې.

### د غاصب نه د غلام تاوان اخستل.او د خرڅولو يا آزادولو حکم

قَالَ (وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا) يو کس يو غلام غصب کړو. (فَبَاعَهُ) و خرڅ ئې کړو. (فَضَمَّنَهُ الْمَالِكُ قِيمَتَهُ) و مالك د هغه نه دده د قيمت تاوان واخستلو. (فَقَدْ جَازَ بَيْعُهُ)، نو د غاصب بيع به جائز وی. (وَإِنْ أَعْتَقَهُ) وکه غلام ئې آزاد کړو. (ثُمَّ ضَمِنَ الْقِيمَةَ) و ددې د قيمت ضامن شو. (لَمْ يَجُزْ عِتْقُهُ) نو دده آزادول به جائز نه وی. لِاَنَّ مِلْكَهُ الثَّابِتَ فِيهِ نَاقِصٌ لِثُبُوتِهِ مُسْتَنِدًا أَوْ ضَرُورَةً، ځکه چې غلام کې کوم ملکيت ثابت شو.هغه ناقص دې.دده د مستند، يا اړتيا کيدو په وجه. وَلِهٰذَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْأَكْسَابِ دُونَ الْأَوْلَادِ، په دې وجه دا مزدورئ کاوه په حق کې ښکاره کيږي.د اولاد په حق کې نه ( ښکاره ) کيږي. وَالنَّاقِصُ يَكْفِي لِنُفُوذِ الْبَيْعِ دُونَ الْعِتْقِ كَمِلْكِ الْمُكَاتَبِ او ناقص ملك د بيع د نفاذ لپاره کافی وی.د عتق لپاره نه وی.د مکاتب د ملك پشان.

**تشريح:** يوکس د بل چا غلام غصب کړو.او خرڅ ئې کړو.او مالك د هغه د قيمت تاوان واخستلو.نو د غاصب بيع به نافذ وی.په يو روايت کې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.د امام شافعی ، امام مالك رحمه الله ، او په دوهم روايت کې د امام احمد رحمه الله په نيز بيع نه نافذ کيږي.اوکه غاصب غلام آزاد کړو.بيا مالك تاوان واخستلو .نو عتق به نه نافذ کيږي.وجه د توپير دا ده.چه ملك د غاصب ناقص وی.ځکه چې دده ثبوت په طريقه د استناد وی.او کوم شئ چې په طريقه د استناد ثابت شی.هغه من وجه ثابت او من وجه غيرثابت وی.يا ددې ثبوت د اړتيا په وجه کيږي.ځکه چې د دليل په رو سره د غصب په ذريعه ملك نه ثابتيږي.ځکه چې غصب خالص دښمنی او جګړه ده.او ملك يو نعمت دې.او غاصب لپاره چې کوم ملك ثابتيږي.هغه د قضاء بالضمان د اړتيا په وجه کيږي.چه په يو ملك کې بدل او مبدل منه دواړه جمع نشی.او کوم شئ چې ضرورةً ثابت شی.هغه هم من وجه ثابت او من وجه غير ثابت وی.په دې وجه د ملك ثبوت ظهور صرف د مزدورئ په حالت کې کيږي.د اولاد په حق کې نه کيږي.نو که وينځه ئې غصب کړله.او د غاصب د ضمان ادا کاوه نه وړاندې هغې څه نفع حاصل کړله.نو نفع به د غاصب وی.که د ضمان ادا کولونه مخکې ئې اولاد اوشو.نو هغه د مغصوب منه وی.بهرحال ملك د غاصب ناقص وی.او ناقص ملك د بيع د نفاذ لپاره کافی وی.خو د عتق د نفاذ لپاره کافی نه وی.لکه څنګه چې ملك د مکاتب دې.چه مکاتب پخپله نفع کې اخستل او خرڅول کولې شی.خو د خپلې نفعې غلام نشی آزادولې.

### د مغصوبه څيز د زياتوالی حکم

قَالَ: (وَوَلَدُ الْمَغْصُوبَةِ وَنَمَاؤُهَا) د مغصوبه وينځې بچي او ددې زياتيدل، (وَثَمَرَةُ الْبُسْتَانِ الْمَغْصُوبِ أَمَانَةٌ) او د مغصوب باغ ميوې امانت وي. (فِي يَدِ الْغَاصِبِ) غاصب سره. (إِنْ هَلَكَ) د كه ضائع شي. (فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ، إِلَّا أَنْ يَتَعَدَّى فِيهَا) نو هغه باندې تاوان نشته.خو دا چې غاصب په دې كي تعدى ( ذاتي عمل) اوكړي. (أَوْ يَطْلُبَهَا مَالِكُهَا فَيَمْنَعَهَا إِيَّاهُ). يا د مالك په طلب كاوه باندې دا منع كړي.

**تشريح:** كه يوه وينځه ئې غصب كړله.او د هغې نه بچي پيدا شو.نو د هغې بچي او كوم څه چې د وينځې منافع وي.دغه ډول د مغصوب باغ ميوې د غاصب سره د امانت په طور وي.كه دده په قبضه كي وي.او هلاك شي.نو په غاصب به تاوان لازم نه وي.البته كه په دې كي د غاصب د اړخه زياتوالي اوموندې شي.يا د مالك په طلب كاوه باندې دا هغه ته ورنكړي.نو ضامن به وي.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.

**د احنافو رحمهم الله مسلک:** د نماء مغصوبه نه مراد حسن او جمال وغيره دې.پاتې شو هغه منافع كوم چې د غاصب په استغلال ( او كوشش) سره حاصل شي.نو هغه د مغصوب د قبيلې څنې نه دې.ترديې چې هغې كي زياتوالي كاوه سره ضامن شي.كنی «إلا أن يتعدى فيها» استثناء به مستقيم نه وي.ځكه چې دا په غاصب باندې مضمون نه وي.اګرچه دا هلاك كړي.ځكه چې دا منافع د مغصوب عوض دې.او زموږ په نيز د مغصوب په منافعو باندې ضمان نه وي.نو هم دغه ډول به ددې بدل هم مغصوب نه وي.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعي رحمه الله فرمائي. زَوَائِدُ الْمَغْصُوبِ مَضْمُونَةٌ مُتَّصِلَةً كَانَتْ أَوْ مُنْفَصِلَةً لِوُجُودِ الْغَصْبِ، چې د مغصوب زوائد ( محاصل او منافع) مضمون دي.كه متصل وي.او كه منفصل وي.د غصب معنى موندلو په وجه، وَهُوَ إِثْبَاتُ الْيَدِ عَلَى مَالِ الْغَيْرِ بِغَيْرِ رِضَاهُ، او هغه قبضه مضبوطول دي.د غير په مال باندې،د هغه د رضامندۍ نه بغير، كَمَا فِي الظَّبْيَةِ الْمُخْرَجَةِ مِنَ الْحَرَمِ إِذَا وَلَدَتْ فِي يَدِهِ لكه په هغه اوسۍ كي كومه چې د حرم نه اوښكلې شوې ده.كله چې دده په قبضه كي بچي راوړي. يَكُونُ مَضْمُونًا عَلَيْهِ نو هغه په ده باندې مضمون وي.

**تشريح:** امام شافعي او امام احمد رحمهما الله فرمائي.چه د مغصوب شئ نه څه قسم زياتوالي حاصل شي.غاصب به دهغې ضامن وي.كه هغه زياتوالي متصل وي.لكه حسن او جمال وغيره يا هغه زياتوالي منفصل وي.لكه بچي وغيره، په دې وجه چې ددوى په نيز د غصب تعريف دا دې.چه د غير په مال باندې د هغه د رضامندۍ نه بغير قبضه اوكړې شي.او دا خبره په مذكوره صورت كي موجود ده.نو دا داسې شوه.لكه د حرم نه اوښكلې شوې اوسۍ كه د غاصب په قبضه كي بچي راوړي.نو بچي په ده باندې مضمون وي.ځكه چې د مور په حق كي سبب د ضمان موجود دې.ځكه چې اصل يعنى د مور ضمان د باطل قبضې اچولو په اعتبار سره دې.او هم دا قبضه بعينه په بچي باندې هم ثابته ده. «لحدوثها في ملك اليد فتصير مضمونة ضرورة».

## د احنافو رحمهم الله دليل

وَلَنَا زموږ دليل دا دې. أَنَّ الْغَصْبَ إِثْبَاتُ الْيَدِ عَلَى مَالِ الْغَيْرِ عَلَى وَجْهٍ يُزِيلُ يَدَ الْمَالِكِ عَلَى مَا ذَكَرْنَا، چې غصب د غير په مال باندې په داسې طريقه قبضه اچول دي.چه د مالك قبضه ختمه كړي.لكه څنګه چې موږ ذكر كړل. وَيَدُ الْمَالِكِ مَا كَانَتْ ثَابِتَةً عَلَى هَذِهِ الزِّيَادَةِ حَتَّى يُزِيلَهَا الْغَاصِبُ، او په دې زياتوالي باندې د سره د مالك قبضه نه وي.ترديې چې غاصب دا زائل كړي.

**تشريح:** زموږ دليل دا دې چه د غصب معنى ده.د غير په مال باندې خپله قبضه په دې طريقه اچول،چه د مالك قبضه زائل كړي.لكه څنګه چې په پيل د كتاب الغصب كي بيان شو.او دلته په زياتوالي باندې د مالك قبضه د مخكې نه د سره ثابت نه وه.ترديې چې غاصب دا زائل كړي.نو مذكوره اختلاف د غصب په تعريف باندې مبني شو.

**سوال:** اوس دلته كي دا اعتراض كيږي.چه د مذكوره تعليل په موجب كه وينځه ئې په حالت د حمل كي



غصب كړله.نو ددې د بچي تاوان واجبيدل پكار دي.ځكه چې په ده باندې قبضه ثابت وه.حالانكه كه وينځه حامله غصب كړي.او كه غير حامله، په دواړو صورتونو كي غاصب ددې د بچي نه ضامن كيږي.

**جواب:** ددې ځواب په عنايه او بنايه وغيره شروحو كي دا وركړې شوې دې.چه حمل د جلا كيدو نه مخكې مال نه دې.بلكه هغه خو د وينځې په حق كي عيب شمارلې كيږي. «فلم يصدق إثبات اليد على مال الغير».

خو صاحب د نتائج په دې ځواب باندې دا بحث كړې دې.كه حمل د جلا كيدو نه مخكې مال نه وي.نو حمل آزادول او مدبر كول صحيح كيدل پكار نه دي.ځكه ښكاره هم دا ده.چه د آزادولو او مدبر كاوه محل مال كيدل ضروري نه دي.بلكه ملك كيدل كافي دې.او د ملك تحقق غير مال كي وو. كيداې شي.چه بيا هم مذكوره ځواب د كتاب د عبارت قابل نه دې.ځكه چې د مذكوره ځواب حاصل دا دې.چه د حمل په حالت كي د وينځې غصب كاوه په صورت كي د بچي د ضمان نه واجبيدو وجه دا ده.چه د جلا كيدو نه مخكې حمل مال نه دې.دا وجه نه ده.كنی چې په دې باندې د مالك قبضه ثابت نه وه.حالانكه په كتاب كي هم دا دي. «ويد المالك ما كانت ثابتة على هذه الزيادة».

وَلَوْ اُعْتُبِرَتْ ثَابِتَةً عَلَى الْوَلَدِ لَا يُزِيلُهَا، او كه په بچي باندې د هغه قبضه ثابت اومنلې شي. نو غاصب هغه زائل نكړه. إِذِ الظَّاهِرُ عَدَمُ الْمَنْعِ، حَتَّى لَوْ مَنَعَ الْوَلَدَ بَعْدَ طَلَبِهِ ځكه چې ښكاره نه منع كول دي.ترديې كه غاصب بچي منع كړي.د مالك د طلب كاوه نه پس، يَضْمَنُهُ، نو ضامن به وي. وَكَذَا إِذَا تَعَدَّى فِيهِ كَمَا قَالَ فِي الْكِتَابِ: هم دغه ډول كه هغه په دې كي تعدى اوكړي.لكه څنګه چې په كتاب كي ونيلې شوې دي. وَذَلِكَ بِأَنْ أَتْلَفَهُ او تعدى په دې طريقه ده.چه دا هلاك كړي. أَوْ ذَبَحَهُ يا ئې ذبح كړي. وَأَكَلَهُ او وې خوري. أَوْ بَاعَهُ يا ئې خرڅ كړي. وَسَلَّمَهُ، او وې سپاري.

**تشريح:** او كه ملك د مور تابع كړې شي.او اولاد باندې د مالك قبضه تقديراً ثابت او منلې شي.نو بيا هم غاصب تقديراً قبضه نه ده زائل كړې.ځكه ښكاره حال هم دا دې.چه غاصب به دا د مالك نه منع كولو.ترديې كه هغه د مالك د طلب نه روسته هغه منع كړي.نو ضامن به وي.بيا په زوائد ( منافعو،او محاصلو) باندې د زياتي كولو( تعدى ) صورت دا دې.چه غاصب دا هلاك كړي.يا ئې ذبح كړي.او وې خوري.يا ئې خرڅ كړي.او وې سپاري.

وَفِي الظَّبْيَةِ الْمُخْرَجَةِ لَا يَضْمَنُ وَلَدَهَا او د حرم نه اوښكلې شوې اوسۍ كي د هغې د بچي نه ضامن كيږي. إِذَا هَلَكَ قَبْلَ التَّمَكُّنِ مِنَ الْإِرْسَالِ كه هغه په پريښولو باندې د قابو موندلو نه وړاندې هلاك شي. لِعَدَمِ الْمَنْعِ، نو د منع كاوه د نه موجود كيدو په وجه، وَإِنَّمَا يَضْمَنُهُ إِذَا هَلَكَ بَعْدَهُ لِوُجُودِ الْمَنْعِ بَعْدَ طَلَبِ صَاحِبِ الْحَقِّ وَهُوَ الشَّرْعُ، ضامن كيږي به خو هغه وخت، كله چې دا ددې نه روسته هلاك شي.د صاحب حق يعنى د شرعې د مطالبې نه روسته د منع موجود كيدو په وجه، عَلَى هَذَا أَكْثَرُ مَشَايِخِنَا. زموږ اكثر مشائخ په دې دي.

**تشريح:** د امام شافعي رحمه الله د قياس «كما في الظبية المخرجة من الحرم» ځواب دا دې.چه دا صحيح نه ده.ځكه چې دا قياس كه په پريخودو باندې د قابو موندلو نه مخكې حالت باندې دې.بيا خو دا ښكاره فساد دې.ځكه چې د قابو موندلو نه مخكې اګرچه بچي هلاك شي.نو په ده باندې ضمان نشته.ځكه چې دده د اړخه منع كول او نه موندې شو.او كه مذكوره قياس د قابو موندلو نه روسته حالت باندې دې.نو دا هم صحيح نه دي.ځكه چې دې صورت كي د ضمان وجوب د منع كاوه په وجه دې.چه ده د صاحب حق يعنى د شرع د مطالبې نه روسته منع كړې دې.ځكه چې حرم كي ښكار كاوه كي د شريعت حق دې.او د شارع مطالبه دا ده.چه اصل يعنى اوسۍ ددې د بچي سره پريخودلې شي.زموږ د اكثر متقدمين مشائخو دلته ځواب هم په دې طريقه دې.

وَلَوْ أَطْلَقَ الْجَوَابَ او كه ځواب مطلق وي. فَهُوَ ضَمَانُ جِنَايَةٍ، نو دا د جرم تاوان دې. وَهَذَا يَتَكَرَّرُ بِتَكَرُّرِهَا، دې وجه د

جرم متکرر کیدو په وجه ضمان متکرر کیږي. وَيَجِبُ بِالْإِعَانَةِ وَالْإِشَارَةِ په او په اعانت او اشارې سره هم واجبیږي. فَلِأَنْ يَجِبَ بِمَا هُوَ فَوْقَهُمَا نو که ضمان واجب وي په دې سره کوم چې ددې نه زیات دي. وَهُوَ الْبَاتُ الْيَدِ عَلَى مُسْتَحِقِّ الْأَمْنِ او هغه په مستحق د امن باندې قبضه اچولې ده. أَوْلَى وَأَحْرَى نو زیاته بهتره او مناسب به وي.

**تشريح:** اوکه خواب مطلق وي. یعنی په هرصورت کې د ضامن کیدو حکم اومنلې شي. بیا هم څه اعتراض نشی کیدې. ځکه چې د جنایت دا ضمان د جرم تاوان دې. د غصب ضمان نه دې. په دې وجه که جرم متکرر وي. نو جرمانه هم متکرر کیږي. مثلاً یو خل ئې اوسئ اوښکله. نو مجرم شو. که دوباره ئې اوباسی. نو بیا به جرمانه لازم وي. او دا جرمانه په امداد او اشارې سره هم واجبیږي. یعنی که په اوښکلو کې ئې د چا کومك اوکړو. یا ئې هغه ته په اشاره اوښودل. نو کومك کونکې او اشاره کونکې هم مجرم وي. حالانکه دا غصب نه دې. بلکه جرم دې. او هرکله چې جرمانه د کومك او اشارې پشان امورو سره هم واجبیږي. نو کوم فعل چې ددې نه زیات دې. یعنی د امن مستحق اوسئ باندې قبضه اچول، په دې سره به په طریقهٔ اولی واجب وي.

﴿ حاصل دا چې د اوسئ په مسئله کې که اومنلې شي. چه ددې په بچی باندې زیاتې ( او تعدی ) کاوه سره تاوان واجبیږي. نو دا ضمان د جنایت او تاوان چې واجب دې. دا ضمان د غصب دې. نو ضمان د غصب په ضمان د جنایت باندې قیاس کول صحیح نه دی.

### د بچې پیدا کیدو په وجه مغصوبه وینځه کښې د نقصان حکم

قَالَ (وَمَا نَقَصَتِ الْجَارِيَةُ بِالْوِلَادَةِ فِي ضَمَانِ الْغَاصِبِ) او کوم نقصان چې راشی په وینځه کې ، د بچی پیدا کیدو په وجه، نو دا به د غاصب په ضمان کې وي. فَإِنْ كَانَ فِي قِيمَةِ الْوَلَدِ وَفَاءٌ بِهِ نو که د بچی په قیمت سره نقصان پوره شي. انْجَبَرَ النُّقْصَانُ بِالْوَلَدِ نو هم ددې څخه به پوره کولې شي. وَسَقَطَ ضَمَانُهُ عَنِ الْغَاصِبِ). او د غاصب څخه به دا تاوان ساقطیږي.

**حل اللغة:** **وفاء**: د واجب حقونو پوره کاوه لائق مال، **جبر(ن) جبراً**: درست کول، **ظبیه**: اوسئ، **جز جزاً**: کټ کول، **صوف**: وړئ، **قوائم** د قائمة جمع ده. د څاروی خپې، وُنه، خابن، **خصی(ض) خصاءً**: خصی کول، **حرفة**: پیشه، **اضناه اضناء**: کمزورې او ډنگر کول، **سمینة**: سربه، غټه موټه، **هزلت (ن،س) هزلاً**: کمزور کیدل، **سمنت (س) سمناً**: سربه کیدل، **ثنية**: مخکې بره او لاندې دوې (دوه) غاښونه، **نبت نبتاً نباتاً (ن)**: راټوکیدل ، راختل ، **ارش**، دیت، تاوان ، **فسقة**: د فاسق جمع بدکار، **نمو**: زیاتیدل، ډیریدل.

**تشريح:** یو سړی د یوکس وینځه غصب کړله. او د هغې بچی پیدا شو. نو د بچی پیدا کیدو په وجه چې ددې په قیمت کې کوم نقصان لازمیږي. د هغې نقصان به په غاصب وي. خو دا نقصان به ددې په بچی سره پوره کولې شي. که دده قیمت د نقصان برابر وو. اوکه کم وي. نو د قیمت برابر نقصان ضمان به ساقطیږي. مثلاً د مغصوبه وینځې قیمت سل روپئ وو. او د بچی پیدا کیدو نه روسته شپیته روپئ شو. نو که ددې د بچی قیمت څلوېښت روپئ وي. نو نقصان به پوره کولې شي. او وینځه به سره د بچی مالك ته ورکولې شي. او په غاصب به هیڅ واجب نه وي. اوکه د بچی قیمت پنځویشت روپئ وي. نو په څلوېښت روپو کې به پنځویشت روپئ حسابولې شي. او په غاصب به د پنځلسو روپو ضمان لازم وي. خو په قیمت سره نقصان هغه وخت پوره کولې شي. کله چې بچی ژوندې پیدا شي. گنی غره ( یعنی دیت سره به نقصان پوره کولې شی ).

وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: امام زفر او امام شافعی رحمهما الله فرمائی. لَا يَنْجَبِرُ النُّقْصَانُ بِالْوَلَدِ، چې بچی سره به نقصان نشی پوره کولې. لِأَنَّ الْوَلَدَ مِلْكُهُ ځکه چې بچې هم دده ملك دې. فَلَا يَصْلُحُ جَابِرًا لِمِلْكِهِ كَمَا فِي وَلَدِ الظَّبْيَةِ، وَكَمَا إِذَا هَلَكَ الْوَلَدُ قَبْلَ الرَّدِّ أَوْ مَاتَتِ الْأُمُّ وَبِالْوَلَدِ وَفَاءٌ، نو هغه دده د ملك لپاره نقصان پوره کیدونکی نشی کیدې. لکه څنگه چې د اوسئ په بچی کې دی. او لکه چې کله بچې د واپس کاوه نه مخکې مړشي. یا مور مړه شي. په داسې



حال کې چې د بچی قیمت سره پوره کولې شي. وَصَارَ كَمَا إِذَا جَزَّ صُوفَ شَاةِ غَيْرِهِ او دا داسې شوه. لکه چې د غیر د وزه نه وړئ کټ کړي. أَوْ قَطَعَ قَوَائِمَ شَجَرِ غَيْرِهِ یا د بل د وُنې نه خابنونه کټ کړي. أَوْ خَصَى عَبْدَ غَيْرِهِ یا د یوکس غلام خصی کړي. أَوْ عَلَّمَهُ الْحِرْفَةَ یا هغه ته څه پیشه اوښائی. فَأَضْنَاهُ التَّعْلِيمُ، او تعلیم هغه لره کمزورې کړي.

**تشريح:** امام زفر، امام شافعی ، او امام احمد رحمهم الله فرمائی. چې د بچی په ذریعه به نقصان نشی پوره کولې. ځکه چې دا بچې هم د مالك ملکیت دې. نو دا نشی کیدې. چه دده ملکیت پخپله دده د ملکیت نقصان پوره کړي. لکه ① د حرم نه د اوښکلې شوې اوسئ نقصان پوره کول ددې په بچی سره نه کیږي. ② دغه ډول که د واپس کاوه نه مخکې بچې مړ شو. ③ یا د بچی پیدا کیدو په وجه دده مور مړه شوه. او د بچی قیمت دومره دې. چه هغه د تاوان پوره کیدو لائق دې. نو په دې صورتونو کې هم بالاتفاق نقصان نشی پوره کولې. او دا داسې شوه. لکه چې ④ د بل چا د وزه وړئ کټ کړي. ⑤ یا د بل کس د وُنو خابنونه کټ کړي. ⑥ یا د یوکس غلام خصی کړي. ⑦ یا غلام ته څه پیشه اوښائی. او په زده کاوه کې هغه کمزورې او ډنگر شي. چه په دې اووه واړه صورتونو کې د نقصان ضامن کیږي. اگرچه قیمت زیات شي.

وَلَنَا زمونږ دلیل دا دې. أَنَّ سَبَبَ الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ وَاحِدٌ، چې د زیاتوالی سبب یو دې. وَهُوَ الْوِلَادَةُ أَوِ الْعُلُوقُ عَلَى مَا عُرِفَ، وَعِنْدَ ذَلِكَ لَا يُعَدُّ نُقْصَانًا او هغه ولادت یا نطفه قائمیدل دی. او په داسې حالت کې ولادت نقصان نه شمارلې کیږي. فَلَا يُوجِبُ ضَمَانًا، نو دا به موجب د ضمان نه وي.

**تشريح:** زمونږ دلیل دا دې. چه دلته د زیاتوالی او نقصان دواړو سبب متحد دې. او هغه د بچی پیدا کیدل دی. ( د صاحبینو رحمهما الله په نیز) یا نطفه قائمیدل دی. ( د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز). او هرکله چې د زیاتوالی او د نقصان سبب یو شئ دې. نو د بچی پیدا کیدل به نقصان نه شمارلې کیږي. نو دا به موجب د ضمان هم نه وي. او دا داسې شوه. لکه چې غټه موټه ( سربه) وینځه ئې غصب کړله. او هغه کمزورې شوه. او ددې نه روسته بیا سربه شوه. یا ددې مخکې غاښونه اووتل. روسته بیا راوُختل. یا د مغصوب غلام لاس کټ کړې شو. او غاصب جرمانه واخستله. او لاس کټ شوې غلام ئې سره د جرمانې واپس کړو. نو په دې درې واړو صورتونو کې نقصان پوره کیږي.

وَصَارَ كَمَا إِذَا غَصَبَ جَارِيَةً سَمِينَةً او دا داسې شوه. لکه چې غټه موټه سربه وینځه ئې غصب کړله. فَهَزَلَتْ ثُمَّ سَمِنَتْ او هغه کمزورې شوه. ددې نه روسته هغه دوباره سربه شوه. أَوْ سَقَطَتْ ثَنِيَّتُهَا یا ددې مخکنی غاښونه اووتل. ثُمَّ نَبَتَتْ أَوْ قُطِعَتْ يَدُ الْمَغْصُوبِ فِي يَدِهِ او بیا راوُختل. یا د مغصوب غلام لاس کټ کړې شو. وَأَخَذَ أَرْشَهَا او غاصب د هغې جرمانه واخستله. وَأَدَّاهُ مَعَ الْعَبْدِ او جرمانه ئې سره د غلام نه واپس کړله. يُحْتَسَبُ عَنْ نُقْصَانِ الْقَطْعِ، نو د لاس کټ کاوه نقصان پوره کیږي.

**تشريح:** په دې باندې ویونکې دا وئیلې شي. چه په دې دواړو صورتونو کې اتحاد د سبب نشته. ځکه چې سبب د نقصان چې په ړومبی صورت کې هزال ( کمزورې کیدل) او په دوهم صورت کې سقوط ثنیه ( مخکې غاښونه غورځیدل) دی. دا دهغه زیاتوالی د سبب مغایر دې. کوم چې په ړومبی صورت کې ثمن ( سربه کیدل) دی. او په دوهم صورت کې نبت ثنیه ( غاښونه راختل) دی. حالانکه روسته علامه مرغینانی رحمه الله د مقابل یعنی د امام شافعی رحمه الله قیاس هم په دې بنا (بنیاد) باندې رد کړې دې. چه په مقیس علیه کې سبب متحد نه دې. نو بیا موصوف لپاره په ذکرشوی دواړو صورتونو باندې قیاس کول څنگه صحیح کیږي. چې په هغې کې هم اتحاد د سبب نشته.

وَوَلَدُ الظَّبْيَةِ مَمْنُوعٌ، او د اوسئ د بچی مسئله ممنوع ده. وَكَذَا إِذَا مَاتَتِ الْأُمُّ دغه ډول کله چې مور مړه شي. وَتَخْرِيجُ الثَّانِيَةِ أَنَّ الْوِلَادَةَ لَيْسَتْ بِسَبَبٍ لِمَوْتِ الْأُمِّ، او د دوهم روایت تخریج دا دې. چه د بچی پیدا کیدل د مور د مرگ سبب

نه دي. إذْ الوِلَادَةُ لَا تُفْضِي إلَيْهِ غَالِبًا، ځکه چې د بچي پيدا کيدل په عامه توګه (عام طور) دې پورې خبره نه رسوي. وَبِخِلَافِ مَا إذَا مَاتَ الوَلَدُ قَبْلَ الرَّدِّ، او په خلاف ددې کله چې بچې د واپس کاوه نه مخکې مرشي. لِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ رَدِّ أَصْلِهِ لِلْبَرَاءَةِ، ځکه چې د برى کيدو لپاره ددې اصل واپس کول ضروري دي. فَكَذَا لَابُدَّ مِنْ رَدِّ خَلَفِهِ، نو هم دغه دول ددې د خليفه واپس کول به هم ضروري وي. وَالخِصَاءُ لَا يُعَدُّ زِيَادَةً، او خصي کول زياتوالي نه شمارلي کيږي. لِأَنَّهُ غَرَضُ بَعْضِ الفَسَقَةِ، ځکه چې دا خو د بعضو فاسقانو مقصد وي. وَلَا اتِّحَادَ فِي السَّبَبِ فِيمَا وَرَاءَ ذَلِكَ مِنَ المَسَائِلِ، او ددې نه سوا په پاته مسئلو کې سبب متحد نه دي. لِأَنَّ سَبَبَ النُّقْصَانِ القَطْعُ وَالجَزُّ، ځکه چې د نقصان سبب پرې کول او تراشل دي. وَسَبَبُ الزِّيَادَةِ النُّمُوُّ، او د زياتوالى سبب راختل او غټيدل دي. وَسَبَبُ النُّقْصَانِ التَّعْلِيمُ، او د نقصان سبب تعليم دي. وَالزِّيَادَةُ سَبَبُهَا الفَهْمُ او د زياتوالى سبب ددې پوهه ده.

**تشريح:** ددې ځاى نه په مذکوره اووه جزئياتو باندې د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله د قياس ځواب دې. ① ځواب دا دې چه د بچي پيدا کيدو په وجه د اوسۍ نقصان د بچي په قيمت سره نه پوره کيدل نه منو. ځکه چې غير ظاهر الرواية کې د بچي قيمت سره نقصان پوره کولې شي. (علامه مرغيناني رحمه الله هم دې اړخ ته مائل دې). نو په دې باندې مذکوره قياس غلط شو. ② ځواب دا دې چه د مور د مرګ په صورت کې د بچي په قيمت سره د نقصان پوره کيدو په اړه کې دوې (دوه) روايتونه دي. يو دا چې نقصان به پوره کولې شي. کله چې د بچي قيمت د نقصان پوره کيدو قابل وي. (دا غير ظاهر الرواية دې) په دې روايت باندې مذکوره قياس زمونږ خلاف نه دې. او ظاهر الرواية دا دې چه نقصان به نشي پوره کولې. په دې روايت باندې مذکوره قياس زمونږ خلاف دې.

نو ددې ځواب دا دې چه د وينځې د مرګ سبب د بچي زيږيدل نه دې. ځکه چې ډير ځله په بچي پيدا کيدو سره مرګ نه واقع کيږي. ګويا د بچي پيدا کيدل د زياتوالى سبب دې پاتې شو مرګ، نو دا په بل څه سبب سره واقع شوې دې. نو سبب متحد نشو. حالانکه زمونږ خبره په دې صورت کې ده. کله چې د سبب او نقصان سبب يو وي. ③ يعني د «او كما إذا هلك الولد قبل الرد» ځواب دا دې چه دلته د برى کيدو لپاره اصل يعني مور په کوم صفت باندې غصب کړې شوې وه. هم هغه صفت باندې واپس کول ضروري دي. نو ددې خليفه يعني د بچي واپس کول هم ضروري شو. حالانکه هغه مور په هغه صفت سره واپس نکړه. بلکه په بچي پيدا کيدو سره ئې ناقص کړه. نو واپس ئې کړه. دلته د واپسۍ نه مخکې بچې مړ شو. نو د بچي سره چې کوم واپس کول واجب وو. هغه شان اونشو. نو ضامن به وي. ځکه چې خبره هم په دې صورت کې ده. چه مور ددې دبچي سره واپس کړي. ④ يعني د «او خصى عبد غيره» ځواب دا دې چه غلام خصي کول کوم چې تا زياتوالې شمار کړې دې. دا زياتوالې نه دې. دا خو د بعضو فاسقانو مقصد وي. نو په شرع کې به ددې هيڅ اعتبار نه وي. ځکه چې شريعت دا فعل حرام ګرځولې دې. (د ۴، ۵، ۶ او ۷) ځواب دا دې چه په دې مسئلو کې اګرچه زياتوالې دې. خو سبب متحد نه دې. ځکه چې د ونو څانګونه پرې کول، او په وړۍ کټ کاوه کې د نقصان سبب څانګونه پرې کول او وړۍ تراشل دي. او د زياتوالى سبب ددې غټيدل دي. او د هنر په تعليم کې د نقصان سبب تعليم دې. چه دا موجب د مشقت دې. چه ددې په وجه کمزوري پيدا کيږي. او د زياتوالى سبب دده فهم يعني د ذهن تيزوالى (او پوهه) ده.

**سوال⊙** بچې خو غاصب سره امانت وي. نو دا د مضمون خليفه څنګه کيداى شي؟

**جواب⊙** علامه مرغيناني رحمه الله دې اړخ ته پخپل قول «او عند ذالك لا يعد نقصانا» سره اشاره کوي. چه په دې سره سوال دفع کيږي. «فلله درّ المصنّف عالمًا ما أدق تحريره و ما أزكى قريحته و ما أمعن نظره و ما ألطف ذهنه جزاه الله عن المحصلين خيرًا».

**مغصوبه وينځې سره د زنا حکم**



**قَالَ:** (وَمَنْ غَصَبَ جَارِيَةً) يو کس يوه وينځه غصب کړله (فَزَنَى بِهَا) او هغې سره ئې زنا اوکړله. (فَحَبِلَتْ) او هغه حامله شوه. (ثُمَّ رَدَّهَا) بيا ئې هغه واپس کړله. (وَمَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا) او هغه پخپل نفاس کې مړه شوه. (يَضْمَنُ قِيمَتَهَا يَوْمَ عَلِقَتْ) نو غاصب به ددې د هغه قيمت ضامن وي. کوم چې د حامله کيدو په ورځ وو. (وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِي الحُرَّةِ) او د حره (آزادې) په صورت کې به په دې ضمان نه وي. (وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)[1] دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى. (وَقَالَا:) صاحبين رحمهما الله فرمائي. (لَا يَضْمَنُ فِي الأَمَةِ أَيْضًا) چې د وينځې په صورت کې به هم ضامن نه وي.

**تشريح: حل اللغة:** حبلت (س) حبلاً: حامله کيدل، علقت (س) علوقاً: حامله کيدل، د نطفې قائميدل، حمت تبه کيدل، جلدت (ض) جلداً: کوړې لګول.

**تشريح:** غاصب د مغصوبه وينځې سره (په رضا يا په زبردستۍ) زنا اوکړله. او هغه ئې د حمل په حالت کې واپس کړله. يا وينځه مالک ته راغله. او په نفاس کې مړه شوه.

**د امام صاحب رحمه الله مسلک⊙** د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز غاصب باندې به د قيمت تاوان وي، کوم چې د حامله کيدو په ورځ وو. او که غاصب حره (آزادې) مغصوبه وينځې سره زنا اوکړله. او د حمل په حالت کې ئې واپس کړله. او هغه په نفاس کې مړه شوه. نو ضامن به نه وي.

**د صاحبينو او د أئمه ثلاثه رحمهم الله مسلک⊙** د صاحبينو رحمهما الله او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د وينځې په صورت کې به هم ضامن نه وي. (البته د حمل د نقصان به ضامن وي).

لَهُمَا أَنَّ الرَّدَّ قَدْ صَحَّ، ددوى دليل دا دې چه واپسي صحيح شوه. وَالهَلَاكُ بَعْدَهُ بِسَبَبٍ حَدَثَ فِي يَدِ المَالِكِ، او مرګ ددې نه روسته داسې سبب سره شوې دې. چه هغه د مالک په قبضه کې پيدا شوې دې. وَهُوَ الوِلَادَةُ، او هغه د بچي پيدا کيدل دي. فَلَا يَضْمَنُ الغَاصِبُ. كَمَا إذَا حُمَّتْ فِي يَدِ الغَاصِبِ، نو غاصب به ضامن نه وي. لکه که د غاصب په قبضه کې دې ته تبه راشي. ثُمَّ رَدَّهَا، بيا ئې هغه واپس کړي. فَهَلَكَتْ. او هغه مړه شي. أَوْ زَنَتْ فِي يَدِهِ، يا مثلاً د غاصب په قبضه کې وينځې زنا اوکړله. ثُمَّ رَدَّهَا او غاصب واپس کړله. فَجُلِدَتْ، بيا دې ته کوړې (دُرې) اولګولې شوې. فَهَلَكَتْ مِنْهُ، او هغه په دې سره مړه شوه. وَكَمَنْ اشْتَرَى جَارِيَةً قَدْ حَبِلَتْ عِنْدَ البَائِعِ، يا مثلاً يو کس داسې وينځه واخستله. چه هغه د بائع په قبضه کې حامله شوې وه. فَوَلَدَتْ عِنْدَ المُشْتَرِي، هغې مشتري سره بچې راوړلو. وَمَاتَتْ فِي نِفَاسِهَا، او په نفاس کې مړه شوه. لَا يَرْجِعُ عَلَى البَائِعِ بِالثَّمَنِ، نو بالاتفاق هغه د بائع نه ثمن واپس نشي اخستلي.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې چه سبب د هلاکت د بچي پيدا کيدل دي. چه ددې وجود مالک سره پيدا شوې دې. نو د غاصب د اړخه د وينځې واپسي صحيح شوه. ځکه چې هغه مستحق ته د هغه حق اورسولو. او حق رسول د ضمان د براءت (او خلاصي) موجب دې. (صرف دومره خبره ده. چه غاصب دا عيب داره کړو. نو د عيب تاوان به اخلي) بيا صاحبينو رحمهما الله دا په يوڅو جزئياتو باندې قياس کړې دې. ① که وينځې ته د غاصب سره تبه راغله. بيا غاصب وينځه واپس کړله. او هغه د مالک په قبضه کې راغله. او مړه شوه. نو هغه به ضامن نه وي. ② وينځې د غاصب په قبضه کې زنا اوکړله. بيا غاصب هغه واپس کړله. او د مالک په قبضه کې هغې ته د زنا په وجه حد اولګولې شو. او هغه مړه شوه. نو غاصب به ضامن نه وي. ③ يوکس يوه داسې وينځه واخستله. چه هغه د بائع په قبضه کې حامله شوې وه. بيا هغې د مشتري سره بچې راوړلو. او حال دا چې مشتري ته د حمل علم نشته. بيا هغه پخپل نفاس کې مړه شوه. نو هغه بالاتفاق د بائع نه ثمن واپس

[1] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٢٧٥\٤) وملتقى الأبحر (٩٣\٤) ومجمع الأنهر (٩٣\٤) والدر المختار (١٤٤\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٣\٢)

اخستلې شي. دا ذې هم واضحه وي. چه د «او ماتت في نفاسها» قيد ددې لپاره دې. چه كه ددې مرګ د بچې پيدا كيدو په وجه واقع شو. نو بالاجماع به ضامن وي.

**تنبيه:** علامه مرغيناني رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله د اړخه كوم دليل پيش كړې دې. هغې باندې دا اعتراض كيداې شي. چه ددې نه مخكې موصوف تصريح كړې وه. چه د بچې پيداكيدل سبب د مرګ نه دې. «حيث قال: و تخريج الثانية أن الولادة ليست بسبب لموت الأم إذ لا تفضى إليه غالبا» او دلته ئې د بچې پيدا كيدل د هلاكت سبب ګرځولې دې. نو په دواړو كلامونو كې تدافع ده. «فليتامل في التوجيه».

### د امام صاحب رحمه الله دليل

**وَلَهُ** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. **أَنَّهُ غَصَبَهَا وَمَا انْعَقَدَ فِيهَا سَبَبُ التَّلَفِ** چې ده دا په داسې حالت كې غصب كړله. چه وينځه كې سبب د هلاكيدو موجود وو. **وَرُدَّتْ وَفِيهَا ذٰلِكَ** او هغه په داسې حالت كې واپس كړې شوه. چه په دې كې سبب د هلاكت موجود دې. **فَلَمْ يُوجَدِ الرَّدُّ عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي أَخَذَ** نو واپس په داسې طريقه اونشوه. په كومه طريقه چې ده اخستې وه. **فَلَمْ يَصِحَّ الرَّدُّ** نو واپسي صحيح نشوه.

**حل اللغة:** **تلف** (س) **تلفاً** هلاكيدل، بربادېدل، **جنت** (ض) **جناية** ګناه كول، جرم كول، **جلد** كوړې لګول، **مولم** دردناك، **جارح** زخمي كونكې، **متلف** هلاكونكې.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. چه كله غاصب وينځه غصب كړې وه. هغه وخت په دې كې د هلاكيدو هيڅ سبب نه وو. او كله چې ده واپس كړله. دغه وخت په دې كې د هلاكيدو سبب يعنى حمل موجود دې. نو واپسي صحيح نشوه.

**صَارَ كَمَا إِذَا جَنَتْ فِي يَدِ الْغَاصِبِ جِنَايَةً** او دا داسې شوه. لكه چې وينځې د غاصب په قبضه كې څه جرم اوكړو **فَقُتِلَتْ بِهَا فِي يَدِ الْمَالِكِ**. او د مالك په قبضه كې قتل كړې شوه. **أَوْ دُفِعَتْ بِهَا بِأَنْ كَانَتِ الْجِنَايَةُ خَطَأً يَرْجِعُ عَلَى الْغَاصِبِ بِكُلِّ الْقِيمَةِ**. يا هغه ددې جرم په عوض كې وركړې شوه. په دې طريقه چې جرم خطاء وو. هغه به د غاصب نه پوره قيمت واپس اخلي. **كَذَا هٰذَا**. دغه ډول دلته كې هم دى.

**تشريح:** او دا داسې شوه. لكه چې وينځې د غاصب په قبضه كې جرم (قتل) اوكړو. بيا ددې جرم په وجه دا د مالك په قبضه كې قتل كړې شوه. يا كه ددې جرم خطاء وو. نو ددې په عوض كې وينځه وركړې شوه. نو هغه د غاصب نه پوره قيمت واپس اخلي. نو هم دغه ډول به په زيربحث مسئله كې هم كيږي.

**بِخِلَافِ الْحُرَّةِ** په خلاف د آزادې، **لِأَنَّهَا لَا تُضْمَنُ بِالْغَصْبِ لِيَبْقَى ضَمَانُ الْغَصْبِ بَعْدَ فَسَادِ الرَّدِّ**. ځكه چې آزاده غصب سره نه مضمون كيږي. تردې چې د واپسۍ فاسد كيدو نه روسته هم د غصب تاوان پاته پاتې شي.

**تشريح:** په خلاف د آزادې ښځې چې آزاده ښځه غصب سره نه مضمون كيږي. (ځكه چې دا مال نه دې). تردې چې د واپسۍ فاسد كيدو نه روسته هم د غصب تاوان باقي پاتې شي.

**وَفِي فَصْلِ الشِّرَاءِ الْوَاجِبُ ابْتِدَاءُ التَّسْلِيمِ** او د اخستلو په مسئله كې ابتداء كې واپس كول واجب دى. **مَا ذَكَرْنَا شَرْطُ صِحَّةِ الرَّدِّ** او كوم چې موږ دلته كې ذكر كړې دى. هغه د واپسۍ صحيح كيدو شرط دې.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د دريو وارو قياسونو ځواب دې. د دريم قياس يعنى د صاحبينو رحمهما الله د قول «و كمن إشترى جارية قد حبلت في يد البائع» ځواب دا دې. چه اول خو زموږ بعضو مشائخو دا نه دې منلې. بلكه دا ئې وئيلې دى. چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به هغه پوره ثمن واپس اخلي. او بعضو نورو مشائخو اګرچه مذكوره حكم منلې دې. البته هغوى په مسئله د غصب او په مسئله د اخستلو كې توپير كړې دې. هغه دا چې په فصل د شراء كې بائع باندې واپسي واجب نه ده. بلكه په ده باندې تسليم (سپارل) واجب دى. چه هغه ابتداء كې مبيع هم دغه ډول حواله كوي. په كومه طريقه چې عقد واقع شوې دې. او دا خبره دده د اړخه او



موندې شوه. ځكه چې عقد عين شي باندې واقع كيږي. په اوصافو باندې نه واقع كيږي. په دې وجه د اوصافو په مقابله كې هيڅ ثمن نه وي. او وينځه د نفاس په حالت كې مړه كيدو سره سپارل د معدوم نشو. په خلاف غاصب، چې د هغه په ذمه د خپل فعل فسخ كول واجب دى. او دا به هغه وخت كيږي. كله چې هغه په داسې حالت كې واپس كړي. په كوم حالت ئې چې قبضه كړې وه. ځكه چې غصب كې اوصاف هم داخل دى. هم دا وجه ده. كه سړيه وينځه ئې غصب كړله. او هغه غاصب سره كمزورې شوه. او هغه ئې د كمزورۍ په حالت كې واپس كړله. نو هغه د نقصان ضامن ګرځيږي. هركله چې اوصاف په غصب كې داخل شو نو د اوصافو نه بغير واپس كول فاسد واپسي شوه. حالانكه موږ چې كوم ذكركړي دى. چه واپسي په هغه طريقه وي. په كومه طريقه ئې چې دا وينځه اخستې وه. دا د واپسۍ د صحت لپاره شرط دې. او داسې واپسي دلته كې اونه موندې شوه. ځكه چې كله ده وينځه غصب كړې وه. هغه وخت په دې كې سبب د هلاكت (حمل) موجود نه وو. او كله چې ده واپس كړله. دغه وخت په دې كې سبب د هلاكت موجود دې.

**وَالزِّنَا سَبَبٌ لِجَلْدٍ مُؤْلِمٍ لَا جَارِحٍ وَلَا مُتْلِفٍ** او زنا د داسې وهلو سبب دې. چه هغه درد رسولو والا وي. داسې نه چې زخمي يا هلاكونكې وي. **فَلَمْ يُوجَدِ السَّبَبُ فِي يَدِ الْغَاصِبِ** نو د غاصب په قبضه كې سبب اونه موندې شو.

**تشريح:** دوهم قياس يعنى د صاحبينو رحمهما الله د قول «او زنت في يده» ځواب دا دې. چه كومه زنا د غاصب په قبضه كې اوموندې شوه. هغه د داسې وهلو موجب ده. چه هغه صرف مولم (درد رسونكې) ده. زخمي كونكې او هلاكونكې نه ده. چه هلاكه ئې كړي په دې وجه داسې كوړه (دُره) اختيارولې شي. چه هغې كې غوټې نه وي. او هركله چې دې ته د مالك په قبضه كې داسې وهل وركړې شو. چه د هغې په وجه دا هلاكه شوه. نو دا ددې د موجب نه علاوه سره شو. كوم چې د غاصب په قبضه كې واجب شوې وو. نو د هلاكيدو سبب د غاصب په قبضه كې او نه موندې شو. نو ضامن به نه وي.

### غاصب د مغصوب د منافعو نه ضامن كيږي

**قَالَ** (**وَلَا يَضْمَنُ الْغَاصِبُ مَنَافِعَ مَا غَصَبَهُ إِلَّا أَنْ يَنْقُصَ بِاسْتِعْمَالِهِ**) او نه ضامن كيږي غاصب، د هغه شي د منافعو، كوم چې ده غصب كړې دې. خو دا چې ناقص شي. دده په استعمال سره، (**فَيَغْرَمُ النُّقْصَانَ**) نو هغه به د نقصان تاوان وركوي.

**تشريح:** زموږ په نيز غاصب د مغصوب شي واپس كاوه پورې ددې د منافعو نه ضامن كيږي. كه ده دا منافع بالفعل حاصل كړې وي. او كه مغصوب شي ئې بې كاره پرېښودې وي. مثلاً يوسړي د بل كس غلام غصب كړو. او هغه ئې يوه مياشت پورې خان سره بند اوساتلو. تردې چې هغه د منافعو غاصب شو. يا ئې ددې غلام نه خدمت واخستلو. تردې چې هغه د منافعو هلاكونكې شو. نو زموږ په نيز به هغه ددې منافعو ضامن نه وي. د صدرالاسلام بزدوى رحمه الله په شرح كافي كې دى. «ليس على الغاصب في ركوب الدابة و سكنى الدار أجرا وهو مذهب علمائنا». البته كه دده په استعمال سره مغصوب كې څه نقصان راغې. نو د نقصان به ضامن وي.

**وَقَالَ الشَّافِعِيُّ**: امام شافعي رحمه الله فرمائي. **يَضْمَنُهَا**، چې د منافعو به ضامن وي. **فَيَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ**، نو اجر مثل به واجب وي. **وَلَا فَرْقَ فِي الْمَذْهَبَيْنِ بَيْنَ مَا إِذَا عَطَّلَهَا** او په دواړو مذهبونو كې ددې توپير نشته. چه غاصب دا بې كاره پرېښودې وي. **أَوْ سَكَنَهَا**. يا ئې دا په اوسيدو كې استعمال كړې وي.

**تشريح:** د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز به د منافعو هم ضامن وي. نو دومره موده چې ددې شي كوم اجر مثل جوړيږي. هغه به د غاصب په ذمه واجب وي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د حكم په حق كې چې ددې شي كوم اجر مثل كيږي. هغه به د غاصب په ذمه واجب وي. علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي. چه د حكم په حق كې ددې دواړو مذهبونو په منځ كې د تحصيل (د منافعو اخستلو) او تعطيل (او د بې كاره پرېښودو) هيڅ توپير نشته. يعنى د امام شافعي رحمه الله په نيز به غاصب په هرشان ضامن وي. كه استعمال ئې

كړي، را ئې بې كار پرېږدي، او زموږ په نيز به په هرشان ضامن نه وي.

**وَقَالَ مَالِكٌ**: امام مالك رحمه الله فرمائي، **إِنْ سَكَنَهَا** كه غاصب په دې كي اوسيدلې وي **يَجِبُ أَجْرُ الْمِثْلِ** نو اجر مثل به واجب وي. **وَإِنْ عَطَّلَهَا لَا شَيْءَ عَلَيْهِ**. اوكه بې كاره ئې پرېښودې وي، نو په ده به هيڅ واجب نه وي.

**تشريح**: د امام مالك رحمه الله د قول په اړه كي د امام مالك رحمه الله د اصحابو اختلاف دې. بعضو ويلي دي چه د منافعو به ضامن نه وي. لكه څنګه چې زموږ قول دې. يعنى نه به د غصب په صورت كي ضامن وي او نه د هلاكاوه په صورت كي، او د ابن القاسم نه نقل دي چه د كورونو او د اوښ او وزه د منافعو به ضامن وي او د غلامانو او د څاروو په منافعو كي به ضامن نه وي. او بعضو ويلي دي كه هغه په مغصوب كور كي اوسيدلې وي نو د اجرمثل به ضامن وي. اوكه دا ئې بې كاره پرېښودې وي، نو هيڅ به واجب نه وي.

**لَهُ** امام شافعي رحمه الله دليل دا دې. **أَنَّ الْمَنَافِعَ أَمْوَالٌ مُتَقَوِّمَةٌ حَتَّى تُضْمَنَ بِالْعُقُودِ** چې منافع هم قيمتي مال دي. ترڅو چې عقودو سره ددې ضمانت واجبيږي. **فَكَذَا بِالْغُصُوبِ**. نوهم دغه ډول به غصب سره هم واجب وي.

**تشريح**: د امام شافعي رحمه الله دليل دا دې، چه منافع هم قيمتي مال دي. ترڅو چې عقود يعنى د اجارې وغيره په ذريعه بالاجماع ددې ضمان واجبيږي. كه عقود صحيح وي. اوكه فاسد وي. نو د اعيانو پشان د غصب په وجه به ددې تاوان هم واجب وي. څكه چې عقد غيرمتقوم نه متقوم كوي. ﴿كما لو ورد على الميتة﴾ وجه دا ده. چه مال دې ته وائي. كوم چې زموږ نه سوا وي. او زموږ د مصلحتونو لپاره پيدا شوى وي. او د منافعو هم دا شان دي. په دې وجه دا د مهر كيدو قابل وي. او د اعيانو مال كيدل هم ددې منافعو په لحاظ سره كيږي. كوم چې ددې سره متعلق دي. هم دا وجه ده. چه كله د يوڅيز منافع كم وي. نو د عين ماليت هم كم وي. اوكله چې د منافعو په اعتبار سره اعيان اموال شو. نو د منافعو پخپله اموال كيدل به په طريقه اولى وي. ددې نه علاوه د منافعو د اړخه د مال عوض اخستل شرعاً صحيح دي. حالانكه د غير متقوم عوض اخستل جائز نه دي. لكه د شرابو او د كونځلو د يوې دانې عوض اخستل، پاتې شو د منافعو قيمتي كيدل نو دا څكه چې تقوم د عزت نه عبارت دي. او منافع هم د خلګو په نيز عزت مند وي. ﴿و لهذا يبذلون الأعيان لأجلها﴾.

**وَلَنَا أَنَّهَا حَصَلَتْ عَلَى مِلْكِ الْغَاصِبِ لِحُدُوثِهَا فِي إِمْكَانِهِ** زموږ دليل دا دې. چه منافع په ملك د غاصب باندې حاصل شوى دي. د هغه په امكان كي د پيدا كيدو په وجه، **إِذْ هِيَ لَمْ تَكُنْ حَادِثَةً فِي يَدِ الْمَالِكِ** څكه چې د مالك په قبضه كي ددې وجود نه وو. **لِأَنَّهَا أَعْرَاضٌ لَا تَبْقَى** څكه چې منافع اعراض وي. چه دا پاته نه پاتې كيږي. **فَيَمْلِكُهَا دَفْعًا لِلْحَاجَةِ** نو غاصب به ددې مالك كيږي. د خپل اړتيا لرې كاوه دپاره.

**تشريح**: زموږ دليل دا دې. چه كله غاصب د مغصوب ضامن شو. كه په قيمت سره وي. او كه په مثل سره وي. نو هله دا منافع پيدا شوي دي. نو دا منافع د غاصب ملكيت باندې پيدا شوي دي. نو دا منافع د غاصب په ملكيت باندې پيدا شوي دي. څكه چې هغه دده په امكان او تصرف او قدرت كي دده په فعل او عمل سره حاصل شوي دي. ﴿والكسب للكاسب لقوله ﷺ كل الناس أحق بكسبه﴾ څكه چې ددې منافعو وجود د مالك په قبضه كي وو. څكه چې منافع اعيان نه دي. بلكه اعراض دي. چه دا پاته نه پاتې كيږي. نو د اړتيا دفع كاوه په خاطر به غاصب ددې مالك كيږي. او دا ښكاره ده. چه انسان د خپل ملك نه ضامن كيږي. اوكه د مالك په ملك باندې ددې مافعو حدوث تسليم كړې شي. بيا هم هغه نشي ضامن كيدې. څكه چې منافع غصب كول يا هلاكول غير متصور دي. څكه چې ددې پاته پاتې كيدل نا ممكن دي. او په دې وجه هم چې منافع د اعيانو مثل نشي كيدې. څكه چې دا زر فناكيږي. او اعيان پاته پاتې كيږي. حالانكه د زياتي (او ظلم) ضمان په مماثلت باندې مبنى دې. قال الله تعالى ﴿فَمَنِ اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ ﴿جَزَاءُ سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ﴾



**وَالْإِنْسَانُ لَا يَضْمَنُ مِلْكَهُ**، او انسان د خپل ملك نه ضامن كيږي. **كَيْفَ وَأَنَّهُ لَا يَتَحَقَّقُ غَصْبُهَا وَإِتْلَافُهَا**، او څنګه به ضامن وي. حالانكه منافع غصب كول، او ددې هلاكول نه متحقق كيږي. **لِأَنَّهُ لَا بَقَاءَ لَهَا**، څكه چې ددوى لپاره بقاء نشته. **وَلِأَنَّهَا لَا تُمَاثِلُ الْأَعْيَانَ لِسُرْعَةِ فَنَائِهَا** او څكه چې د منافعو عين څيزونو سره هيڅ مماثلت نشته. ددې د زر فناكيدو، **وَبَقَاءِ الْأَعْيَانِ**، او د اعيانو د پاته پاتې كيدو په وجه.

**تشريح**: صاحب د نتائج رحمه الله په دې باندې دا اعتراض كړې دې چه ددې دليل مقتضاء دا ده. چه د كورونو او څاروو وغيره په اجاره اخستلو كي مستاجر باندې اجرت واجب نشي. كله چې منافع د هغه په قبضه كي حاصل شي. څكه چې لكه څنګه سړې د خپل ملك نه ضامن كيږي. دغه ډول دده د ملك په مقابله كي اجرت هم واجب نه دي. حالانكه په اجاره كي بالاجماع اجرت واجبيږي ؟

**جواب**⊙ ددې ځواب صاحب د غاية البيان وركړې دې چه اجرت زموږ په نيز د منافعو په مقابله كي نه واجبيږي. بلكه د مالك د اړخه د قابو (او قدرت) وركاوه په مقابله كي وي. څكه چې كله د مالك د اړخه د قابو وركاوه نه بغير ددې منافع نشي حاصلولې. نو د مالك قابو وركول د منافعو حاصلولو يوه وسيله او طريقه شوه. نو د حاجت (او ضرورت) په وجه اجرت كي وسيلې ته پخپله د منفعت حكم وركړې شو.

⊙ صاحب د نتائج رحمه الله فرمائي. چه دا ځواب اګرچه دلته كي مخلص شو. خو په كتاب الاجارات كي چې كوم امور ذكر دي. په ښكاره د هغې ترك لازميږي. مثلاً ﴿① الإجارة تمليك المنافع بعوض، ② والقياس يأبى جوازها لأن المعقود عليه المنفعة و هى معدومة ③ تنعقد الإجارة ساعة فساعة على حسب حدوث المنافع لأن المعاوضة تقتضى التساوى والملك فى المنفعة التى هى المعقود عليه يقع ساعة فساعة على حسب حدوثها فكذالك فى بدلها و هو الأجرة ④ الدار له قيمت مقام المنفعة فى حق إضافة العقود إليها لترتبط الإيجاب بالقبول ثم عمله يظهر فى حق المنفعة ملكاً و استحقاقاً مال وجود المنفعة إلى غير ذالك﴾ دا واړه اقوال په دې دلالت كوى. چه اجرت د منافعو په مقابله كي وى.

⊙ نو غوره ځواب دا دې چه د دليل مذكوره اقتضاء. كوم چې د اجرت عدم وجوب دې. دا په موجب د قياس باندې بناء دې. او هركله چې د اجارې جواز خلاف قياس او په طريقه د استحسان دې. نو په مستاجر باندې د منافعو په مقابله كي د اجرت وجوب هم د استحسان د موجب په طور باندې كيدا [illegible] په خلاف د غصب، څكه چې دا بالكل جائز نه دې. نه قياساً او نه استحساناً. ﴿فلا يترك فيه ما يخالف القياس﴾

**وَقَدْ عَرَفْتَ هَذِهِ الْمَآخِذَ فِي الْمُخْتَلِفِ**، دا په مختلفو كتابونو كي په تفصيل سره معلوم شوى دي.

**تشريح**: د ماخذ نه مراد هغه علل دي. كوم چې مقصد (او بنياد) د حكم دي. كوم چې علامه مرغيناني رحمه الله په ړومبى خل: ﴿لأنها حصلت فى ملك الغاصب﴾ سره، او په دوهم خل: ﴿أنها لا يتحقق غصبها و إتلافها﴾ سره، او په دريم خل: ﴿لأنها لا تماثل الأعيان﴾ سره ذكركړي دي. او د المختلف نه مراد په قول د انزاري او صاحب د عنايه فقيه ابوالليث ،،كتاب المختلف،، دي. خو محقق بدرالدين عينى رحمه الله فرمائي. ﴿لا يجوز أن يكون أراد به مختلف الطريقة بيننا و بين الشافعي رحمه الله فإن هذاه المسألة من جملة المسائل المذكورة فى علم الخلاف﴾

**وَلَا نُسَلِّمُ أَنَّهَا مُتَقَوِّمَةٌ فِي ذَاتِهَا**، او موږ دا نه منو چه دا پخپله قيمتي دي. **بَلْ تَتَقَوَّمُ ضَرُورَةً عِنْدَ وُرُودِ الْعَقْدِ** بلكه د عقد وارد كيدو په وخت د اړتيا په وجه قيمتي ګرځولې شي. **وَلَمْ يُوجَدِ الْعَقْدُ**، حالانكه دلته كي هيڅ عقد نه دې موجود شوې. **إِلَّا أَنَّ مَا انْتَقَصَ بِاسْتِعْمَالِهِ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ لِاسْتِهْلَاكِهِ بَعْضَ أَجْزَاءِ الْعَيْنِ** خو كوم څه چې دده د استعمال په وجه ناقص شي. هغه په ده باندې مضمون دي. د مال عين د بعض اجزاء د هلاكيدو په وجه.

**تشريح**: دامام شافعي رحمه الله د قول ﴿المنافع أموال متقومة﴾ ځواب دې. چه د منافعو پخپله متقوم كيدل موږ نه منو. بلكه كله چې په دې باندې عقد اجاره وغيره واردېږي. نو په وجه د اړتيا خلاف قياس دا قيمتي ګرځولې شي. او دلته غاصب سره هيڅ عقد نه دې موجود شوې. نو ضامن به نه وي. البته په عين مغصوب كي چې كوم څه دده په استعمال سره ناقص شي. د هغې به ضامن وي. څكه چې ده د مال عين په بعض اجزاء

هلاك كړل.بيا د استعمال قيد صرف په اعتبار د غالب دی.ګنی حكم هم دا دی.كه ددی د استعمال نه بغير هم ناقص شی.بيا به هم د نقصان ضامن وی.

## (فَصْلٌ فِي غَصْبِ مَا لَا يَتَقَوَّمُ)

ژباړه: ( دا) فصل د هغه څيزونو د غصب ( د احكامو په بيان كي ) دی.چه هغه قيمتی نه دی.

### د غير متقوم څيزونو د ضمان حكم

قَالَ (وَإِذَا أَتْلَفَ الْمُسْلِمُ خَمْرَ الذِّمِّيِّ أَوْ خِنْزِيرَهُ)كله چي هلاك كړی.مسلمان د ذمی شراب.يا دده خنزير (ضَمِنَ قِيمَتَهُمَا) نو ضامن به وی.

تشريح: ددې مسئلې څلور صورتونه دی :① يو مسلمان د بل مسلمان شراب ضائع كول.② د ذمی د يو مسلمان شراب ضائع كول.( په كتاب كي دا صورت ذكر نه دی).③ د يو ذمی د بل ذمی شراب هلاكول.④ مسلمان د ذمی شراب هلاكول..... په ړومبو دوو صورتونو كي په هلاكونكی باندې بالاجماع ضمان نشته.او په آخری دوو كي زمونږ په نيز ضمان واجب دی.په خلاف د امام شافعی رحمه الله ،

(فَإِنْ أَتْلَفَهُمَا لِمُسْلِمٍ) وكه دا شيان ئي هلاك كړل، د يو مسلمان، (لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وی.وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: امام شافعی رحمه الله فرمانی.لَا يَضْمَنُهُمَا لِلذِّمِّيِّ أَيْضًا چي ذمی لپاره به هم ددې ضامن نه وی.وَعَلَى هَذَا الْخِلَافِ إِذَا أَتْلَفَهُمَا ذِمِّيٌّ عَلَى ذِمِّيٍّ او هم په دې اختلاف ( مبنی ) دی.كله چي د ذمی دا شيان څوك ذمی هلاك كړی.أَوْ بَاعَهُمَا الذِّمِّيُّ مِنَ الذِّمِّيِّ يا دا يو ذمی د بل ذمی په لاس خرڅ كړی.

تشريح:د ،، هما،، ضمير مرجع خمر ( شراب) او خنزير دی.په بعضو نسخو كي ،، أتلفها،، دی.ددې نه مراد په قول د تاج الشريعة ،،اتلفهما،، دی.ددې نظير د الله تعالی ارشاد دی. وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوا إِلَيْهَا و قال الله تعالی﴿ والذين يكنزون الذهب و الفضة ولا ينفقونها في سبيل الله﴾

**د احنافو رحمهم الله او د امام مالك رحمه الله مسلك◎** مسئله دا ده.كه مسلمان د يو ذمی شراب يا دده خنزير هلاك كړو.نو هغه به ضامن وی.اوكه مسلمان د بل مسلمان شراب يا دده خنزير هلاك كړو.نو ضامن به نه وی.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دی.

**د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله مسلك◎** امام شافعی او امام احمد رحمهما الله فرمانی.كه يو مسلمان د ذمی دا شيان هلاك كړل.نو په دې كي به هم ضامن نه وی.او هم دا اختلاف په دې صورت كي دی.كله چي يو ذمی د بل ذمی دا شيان ضائع كړل.يا ئي يو ذمی د بل ذمی په لاس خرڅ كړی.چه زمونږ په نيز ضمان واجب دی.او بيع جائزده.په خلاف د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله ،

### د ذكر شوی مسئلې دليلونه

لَهُ د امام شافعی رحمه الله دليل دا دی.أَنَّهُ سَقَطَ تَقَوُّمُهُمَا فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ چي د مسلمان په حق كي ددې قيمتی كيدل ساقط دی.فَكَذَا فِي حَقِّ الذِّمِّيِّ نو هم د شان د ذمی په حق كي هم دی.لِأَنَّهُمْ أَتْبَاعٌ لَنَا فِي الْأَحْكَامِ ځكه چي هغه احكامو كي زمونږ تابع دی.فَلَا يَجِبُ بِإِتْلَافِهِمَا مَالٌ مُتَقَوِّمٌ وَهُوَ الضَّمَانُ. نو ددې په هلا كاوه سره به قيمتی مال يعنی ضمان نه واجبيږی.

تشريح: د امام شافعی رحمه الله دليل دا دی.چه د مسلمان په حق كي د شرابو او د خنزير تقوم ساقط دی.نو د ذمی په حق كي به هم ساقط وی.ځكه چي احكامو كي دا خلګ زمونږ تابع دی. ﴿لقوله ﷺ : فإذا قبلوا عقد الذمة فاعلمهم أن لهم ما للمسلمين و عليهم ما على المسلمين﴾ نو د شرابو او د خنزير په هلا كاوه سره به قيمتی مال يعنی ضمان واجب نه وی.



وَلَنَا زمونږ دليل دا دی.أَنَّ التَّقَوُّمَ بَاقٍ فِي حَقِّهِمْ، چي ددی په حق كي قيمتی كيدل پاته دی.إِذِ الْخَمْرُ لَهُمْ كَالْخَلِّ لَنَا ځكه چي شراب ددوی لپاره داسې دی.لكه زمونږ لپاره چي سركه ده.وَالْخِنْزِيرُ لَهُمْ كَالشَّاةِ لَنَا.او خنزير ددوی لپاره داسې دی.لكه زمونږ لپاره چي وزه ده.وَنَحْنُ أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَدِينُونَ او مونږ ته حكم راكړی شوی دی.چه هغوی د هغوی په دين پرېږدو.وَالسَّيْفُ مَوْضُوعٌ او هغوی نه توره اوچته كړی شوې ده.فَيَتَعَذَّرُ الْإِلْزَامُ نو حكم لازمول متعذر دی.وَإِذَا بَقِيَ التَّقَوُّمُ او هركله چي تقوم پاته پاتې شو.فَقَدْ وُجِدَ إِتْلَافُ مَالٍ مَمْلُوكٍ مُتَقَوِّمٍ نو د مملوك متقوم هلاكول اوموندې شو.فَيَضْمَنُهُ. نو ضامن به وی.

تشريح: زمونږ دليل دا دی.چه د ذميانو په حق كي د شرابو او د خنزير قيمتی كيدل پاته دی.ځكه چي دا ددوی په حق كي داسې دی.لكه زمونږ په حق كي چي سركه او چيلې ده.او مونږ شرعاً هغوی لره د هغوی په دين باندې په پرېښودو مامور يو.نو كوم خلګ چي ددې د ماليت معتقد دی.د هغوی ابطال توره كيداې شی.حالانكه د ذمې په وجه توره د هغوی د ذمې نه پورته كړې شوې ده.نو حكم لازمول متعذر دی.او هركله چي ددوی په حق كي تقوم پاته پاتې شو.نو د متقوم مملوك هلاكيدل اوموندې شو.نو ضامن به وی.

تنبيه◎ په ذكر شوی دليل باندې دوې (دوه) وجو سره اشكال دی.

**اشكال◎** ① ړومبې دا .چي مقابل يعنی امام شافعی رحمه الله فرمائيلی دی.چه ذمی خلګ احكامو كي زمونږ تابع دی.او په ذكر شوی حديث سره ئې استدلال كړی دی.نو د حديث په مقابله كي دا تعليل ځنګه تام كيداې شی.چه د هغوی په حق كي تقوم پاته دی.حالانكه د نص په مقابله كي تعليل نه صحيح كيږی ؟

ځواب: اوس كه ددې دا ځواب وركړې شی.چه د نبی كريم ﷺ ارشاد ﴿اتركوهم و ما يدينون﴾ زمونږ په مدعا باندې دلالت كوی.نو مقابل دا ونيلې شی.چه د ،، ما يدينون،، نه مراد ديانات دی.معاملات نه دی.او دلته مسئله د معاملاتو ده.د دياناتو نه ده.اوكه د معاملاتو لپاره د حديث عموم اومنلې شی.نو په دواړو نصوصو كي تعارض راځی. ﴿فمن اين يثبت الرجحان﴾.

**اشكال◎** ② دوهم اشكال دا دی.چه په اصولو كي دا خبره فيصله شوې ده.چه كافرانو د ايمان، عقوباتو او د معاملاتو مخاطب دی.او د اخروی مواخذې په حق كي د عباداتو هم مخاطب دی.پاتې شو دنيا كي د عباداتو ادا كاوه وجوب، نو دا مختلف فيه دی.او دلته مسئله معاملاتو سره متعلق ده.نو كوم خطاب چي د شرابو او د خنزير قيمتی مال نه كيدو باندې دلالت كوی.كافرانو لره د هغې مخاطب كيدل پكار دی ؟

**د ړومبی اشكال جواب◎** دا دی.چه كوم نص په دې دلالت كوی.چه كافران احكامو كي زمونږ تابع دی.ددې عموم په زيربحث مسئله كي بالاجماع مخصص دی.ځكه چي امام ابويوسف رحمه الله په كتاب الخراج كي د حضرت عمر رضي الله عنه دا اثر روايت كړی دی.چه كله هغوی د خپلو عمالو( زكاة راټولونكو ملازمينو) نه دا پوښتنه اوكړه.چه كوم ذميان سره د شرابو تيريږی.تاسو هغوی سره څه كوئ؟ هغوی ځواب وركړو.مونږ دهغې عشر وصوله وو.هغوی رضي الله عنه اوفرمائيل. ﴿لا تفعلوا ولوهم بيعها وخذوا العشر من اثمانها﴾ نو هغوی شراب د هغوی حق كي مال متقوم اوګرځولو. ﴿حيث جوّزوا بيعها﴾ او ددې د ثمن نه ئې د عشر اخستلو حكم اوفرمائيلو.او په دې باندې هيڅ چا نكير اونه فرمائيلو.،،فحل محل الإجماع،،

**د دوهم اشكال جواب◎** دا دی.چه د كافرانو معاملات وغيره سره مخاطب كيدل، د هغه امورو ځنې دی.په كومو كي چي خطاب د هغوی لپاره هم د تعميم متحمل وی.په كومو كي چي متحمل نه وی.هغې كي به هغوی قطعاً مخاطب نه وی.او زيربحث مسئله د دوهم ( چي متحمل د تعميم نه وی ) د قبيلې ځنې ده.ځكه چي زمونږ د مخكنو په شريعت كي او زمونږ د شريعت په پيل كي شراب متقوم وو.او اصل دا دی.چه كوم شی د مخكې نه ثابت وی.هغه پاته پاتې كيږی.ترڅو چي كوم مزيل ( ناسخ) اوموندې شی.او مزيل قول د الله تعالی ﴿رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ﴾ دی.هغه په دليل د سياق صرف زمونږ په حق كي اوموندې شو.نو كوم خلګ چي د خطاب لاندې داخل نه دی.د هغوی په حق كي به پخپل حال پاته پاتې وی.نو د كافرانو په حق

کې د تعمیم هیڅ مجال پاتـه پاتې نشو.

لِأَنَّ أَحَدًا مِنْ أَهْلِ الْأَدْيَانِ لَا يَدِينُ تَمَوُّلَهُمَا، إِلَّا أَنَّهُ تَجِبُ قِيمَةُ الْخَمْرِ وَإِنْ بِخِلَافِ الْمَيْتَةِ وَالدَّمِ په خلاف د مردار او وينې. لِأَنَّ أَحَدًا مِنْ أَهْلِ الْأَدْيَانِ لَا يَدِينُ تَمَوُّلَهُمَا، حکه چې د هر يو دين والا دا د مال په طور نه ساتي. صرف دومره خبره ده. چه د كَانَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ، لِأَنَّ الْمُسْلِمَ مَمْنُوعٌ عَنْ تَمْلِيكِهِ خکه چې مسلمان شرابو قيمت به واجب وي. كه هغه د مثلي څيزونو څخه وي. ددې د تمليك نه منع كړې شوې دې. لِكَوْنِهِ إِعْزَازًا لَهُ، خکه چې داسې كول د شرابو قدر (او عزت) دې.

**تشريح:** دا د امام شافعي رحمه الله د مقيس عليه څواب دې. چه په كتاب كې نه دې ذكر شوې. فرمائي. چه په خلاف د مردار او وينې، چې ددې په هلاكاوه كې تاوان ځکه نه واجبيږي. چه د هيڅ دين والا دا د مال په طور باندې نه ساتي. نو د شرابو او د خنزير تاوان به واجب وي. صرف دومره خبره ده. چه شراب اګرچه مثلي شئ دې. خو ددې قيمت به لازم وي. ځکه چې مسلمان ددې د تمليك نه منع كړې شوې دې. ځکه چې داسې كاوه كې د شرابو عزت دې. او دا حرام دې.

بِخِلَافِ مَا إِذَا جَرَتِ الْمُبَايَعَةُ بَيْنَ الذِّمِّيِّينَ لِأَنَّ الذِّمِّيَّ غَيْرُ مَمْنُوعٍ عَنْ تَمْلِيكِ الْخَمْرِ وَتَمَلُّكِهَا.

په خلاف ددې كله چې په دواړو ذميانو كې اخستل او خرڅول جاري شوې وي. ځکه چې ذمي د خنزير د تمليك او تملك نه نه دې منع كړې شوې.

**تشريح:** په خلاف ددې. كه د دوي (دوه) ذميانو پخپل منځ كې د شرابو اخستل او خرڅول جاري شو. نو هيڅ باك نشته. ځکه چې ذمي د شرابو او د خنزير مالك كاوه يا مالك كيدو نه نه دې منع كړې شوې.

وَهَذَا بِخِلَافِ الرِّبَا، لِأَنَّهُ مُسْتَثْنًى عَنْ عُقُودِهِمْ، وَبِخِلَافِ الْعَبْدِ الْمُرْتَدِّ يَكُونُ لِلذِّمِّيِّ، لِأَنَّا مَا ضَمِنَّا لَهُمْ تَرْكَ التَّعَرُّضِ لَهُ لِمَا فِيهِ مِنَ الِاسْتِخْفَافِ بِالدِّينِ،

او دا د سود خلاف دې. ځکه چې سود ددوی د عقودو نه مستثنی دې. او په خلاف د مرتد غلام، چې هغه د يو ذمي ملك وي. ځکه چې موږ هغوی لپاره مرتد سره تعرض نه كاوه څه معاهده نه ده كړې. ځکه چې دې كې د دين بې عزتي ده.

**تشريح:** دا د تير شوي «لأن الذمي غير ممنوع عن تمليك الخمر و تملكها» سره متعلق دې. مطلب دا دې. چه مذكوره حكم په شرابو او خنزير وغيره كې دې. په خلاف د سود، چې دا د هغوی د عهد او ذمې نه مستثنی دې. نو د سود د عقدونو په ابطال كې به هغوی سره تعرض كولې شي. ځکه چې موږ د هغوی په اړه كې په تعرض نه كاوه مامور نه يو. «وقد قال النبي ﷺ: ألا من أربى فليس بيننا و بينه عهد» وجه دا ده. چه سود اخستل د هغوی فسق (نافرماني) دې. دين نه دې. ګنې د سود حرمت خو د هغوی په دين كې هم ثابت دې. قال الله تعالى: ﴿وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ﴾ او په خلاف د مرتد غلام چې د يو ذمي په ملك كې وي. چه هغه به نشي معاف كولې. ځکه چې ذميانو سره زموږ معاهده د مرتد د پريخودو نشته. ځکه چې داسې كاوه كې د دين سپكوالې (بې قدري) كيږي.

وَبِخِلَافِ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا إِذَا كَانَ لِمَنْ يُبِيحُهُ، لِأَنَّ وِلَايَةَ الْمُحَاجَّةِ ثَابِتَةٌ

او په خلاف په قصد سره د تسميه پريښولو، كله چې دا د داسې كس وي. چه هغه دا جائز ګڼړي. ځکه چې دليل سره د قائل كاوه ولايت ثابت دې.

**تشريح:** او په خلاف ددې كه څوك حنفي مسلك والا په قصد سره متروك التسميه هلاك كړي. (چې دا د شوافعو په نيز جائز ده) نو په دې به ضمان واجب نه وي. ځکه چې د شوافعو د ګمان موافق اګرچه په قصد سره تسميه پريښول او حيوان (ښاروې) ذبح كول حلال (جائز) دي. خو په حجت او دليل سره د قائل كاو[ه و]لايت حاصل دې. ځکه چې د الله تعالى ارشاد ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ﴾ په دې اړه كې صريح [دې] چه په قصد سره متروك التسميه حرام ده. مال نه دې. نو د ضمان د وجوب په اړه كې به د شوافعو اعتقاد



معتبر نه وي.

## د مغصوبه څيز په ذات كښې د زياتوالي حكم

قَالَ (فَإِنْ غَصَبَ مِنْ مُسْلِمٍ خَمْرًا) كه د مسلمان شراب ئې غصب كړل فَخَلَّلَهَا. او سركه ئې ترينه جوړه كړله. أَوْ جِلْدَ مَيْتَةٍ يا ئې څرمن غصب كړله فَدَبَغَهُ او رنګ ئې وركړو. فَلِصَاحِبِ الْخَمْرِ (پخه ئې كړله). نو د شرابو مالك ته اختيار دې أَنْ يَأْخُذَ الْخَلَّ بِغَيْرِ شَيْءٍ چې سركه مفت واخلي. وَيَأْخُذَ جِلْدَ الْمَيْتَةِ او د مردار څرمنه واخلي وَيَرُدَّ عَلَيْهِ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ) او په رنګ ور كاوه (پخولوسره) چې په دې كې كوم زيادت راغلې دې. هغه دې وركړي،

**حل اللغة:** خلل تخليلاً: سركه جوړول، جلد: څرمن، فدبغه (ف، ن، ض) دباغاً: څرمن پخول، (رنګ وركول) خل: سركه، ميته: مردار، الشمس: دهوپ، الظل: سورې، قرظ: د سلم د ونې پاڼړې (دا قرظ يعني سلم يو قسم ونه ده. چه ددې په پاڼړو څرمن رنګ كولې شي)، عفص: مازو، د مازو ونه، د څيړئ ونه، ذكي: مذبوح.

**تشريح:** غاصب د مسلمان شراب غصب كړل. او هغه ئې په دهوپ كې كيخودله. او سركه ئې ترينه جوړه كړله. نو مالك هغه ته د څه ور كاوه نه بغير (سركه) اخستلې شي. او كه د مردار څرمنه ئې غصب كړله. او هغې ته ئې د ببول (كيكر) د پوست وغيره رنګ وركړو. نو مالك دا هم اخستلې شي. خو دومره قيمت به وركوي. څومره چې رنګ ور كاوه سره زيات شوې دې. وجه د توپير دا ده. چه شرابو نه سركه جوړول، دا پاكول دي. لكه نجس (پليته) كپړه وينځل. نو سركې جوړولو سره ماليت نه ثابتيږي. او د اصل مالك په ملكيت باندې پاتـه پاتې شوه. په دې وجه د څه ور كاوه نه بغير دې خپل شئ واپس واخلي. په خلاف د ذكر شوي رنګ وركولو. چه ددې په وجه څرمنه كې يو قيمتي مال ملاؤ شو. په دې وجه به دومره مال وركول لازمي وي. څومره چې رنګ ور كاوه سره زيات شوې دې. د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز شراب په سركې جوړولو سره هم نه پاكيږي. په دې وجه به ددې واپس كول واجب نه وي. بلكه اړول (تويول) به ضروري وي. او كه د شرابو نه پخپله سركه جوړه شوه. نو ددې بالاجماع واپس كول ضروري دي. او ددې هلاكونكې به بالاجماع ضامن وي.

وَالْمُرَادُ بِالْفَصْلِ الْأَوَّلِ إِذَا خَلَّلَهَا بِالنَّقْلِ مِنَ الشَّمْسِ إِلَى الظِّلِّ وَمِنْهُ إِلَى الشَّمْسِ، وَبِالْفَصْلِ الثَّانِي إِذَا دَبَغَهُ بِمَا لَهُ قِيمَةٌ كَالْقَرَظِ وَالْعَفْصِ وَنَحْوِ ذَلِكَ.

د ړومبی صورت نه مراد دا دې. چه د شرابو نه ئې سركه جوړه كړله. د دهوپ نه سورې ته منتقل كاوه سره، او ددې نه دهوپ ته، او د دوهم صورت نه مراد دا دې. چه په داسې شئ سره ئې رنګ وركړو (او پخه ئې كړله). چه د هغې څه قيمت شته. لكه قرظ او عفص (د سلم او د څيړئ ونې) وغيره،

**تشريح:** مطلب د ترجمې نه واضح دې

الْفَرْقُ أَنَّ هَذَا التَّخْلِيلَ تَطْهِيرٌ لَهُ او فرق دا دې. چه سركه جوړول، شراب پاكول دي بِمَنْزِلَةِ غَسْلِ الثَّوْبِ النَّجِسِ لكه ناپاكه كپړه وينځل فَيَبْقَى عَلَى مِلْكِهِ نو هغه به د مالك په ملك باندې پاتـه پاتې وي إِذْ لَا تَثْبُتُ الْمَالِيَّةُ بِهِ ځکه چې سركې جوړولو سره ماليت نه ثابتيږي وَبِهَذَا الدِّبَاغِ اتَّصَلَ بِالْجِلْدِ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ لِلْغَاصِبِ او په ذكر شوي رنګ ور كاوه سره څرمنې سره قيمتي مال ملاؤ شو كَالصَّبْغِ فِي الثَّوْبِ لكه په كپړه كې رنګ، فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهِ نو څرمنه به هم د هغې په مرتبه كې وي فَلِهَذَا يَأْخُذُ الْخَلَّ بِغَيْرِ شَيْءٍ، ځکه به سركه مفت اخلي وَيَأْخُذُ الْجِلْدَ وَيُعْطِي مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ. او څرمنه به اخلي. او په رنګ ور كاوه سره چې كوم زياتوالې شوې دې. هغه به وركوي

**تشريح:** د شرابو نه سركه جوړول، او د څرمنې پخول، په دواړو مسئلو كې توپير دا دې. چه د شرابو نه سركه جوړول د هغې پاكول وي. يعني هغه په شرابو كې د خپل څه مملوكه شئ ملاوولو نه بغير، ددې د نجاست او شراب والي صفت زائل كړو. نو دا داسې شوه. لكه يوه ناپاكه كپړه غصب كړي. او هغه اووينځي. نو كپړه د

مالك په ملكيت باندې پاته پاتې كيږي.نو هم دغه ډول سركه به هم د مالك په ملكيت باندې پاته پاتې كيږي.

**سوال:** كېږه نجس العين نه ده.او شراب نجس العين دی.ځكه چې بعينه حرام دی. ﴿لقوله ﷺ: حرمت الخمر لعينها﴾؟

**جواب:** د شرابو جوهر هم د هغې جوهر دې.چه مخكښ شيره وه.كله چې دې ته صفت د شراب والی عارض شو نو دې صفت دې لره نجس كړو.او هركله چې سركې جوړولو سره دا صفت زائل شو.نو نجاست هم ختم شو.نو شرابو ته د ذكر شوی صفت عارض كيدل داسې دی.لكه څنګه چې انسان ته مختلف صفات عارض كيږي. او په ذات كې هيڅ توپير نه راځي.او د ﴿حرمت الخمر لعينها﴾ تاويل دا دې.چه عين شراب حرام دی.كه معمولی وی.او كه ډير وی. ﴿و لهذا قال بعد ذالك و السكر من كل شراب﴾.

وَبَيَانُهُ أَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَى قِيمَتِهِ ذَكِيًّا غَيْرَ مَذْبُوغٍ،او ددې بيان دا دې.چه مذبوح څرمن چې رنګ نه وی وركړې شوې.وَإِلَى قِيمَتِهِ مَذْبُوغًا او د پخې څرمنې د قيمت اندازه دې اولګولې شي.فَيَضْمَنُ فَضْلَ مَا بَيْنَهُمَا نو په دې كې چې كوم څه توپير وی.د هغې به ضامن وی.وَلِلْغَاصِبِ أَنْ يَحْبِسَهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ حَقَّهُ كَحَقِّ الْحَبْسِ فِي الْمَبِيعِ او غاصب ته اختيار دې.چه څرمنه خان سره اوساتي.د خپل حق وصولولو پورې.په مبيع كې د منع كاوه د حق پشان.

**تشريح:** د رنګ ور كاوه په ذريعه كې چې څرمنه كې كوم زياتوالې شوې دې.دهغې د اندازې طريقه دا ده.چه د مذبوح رنګدارې (پخې) څرمنې قيمت.او د بې رنګه (نا پخته) څرمنې د قيمت اندازه دې اولګوی.نو كوم فرق چې وی.د هغې به ضامن وی.

### د سركې يا څرمنې هلاكيدو نه روسته د ضمان حكم

قَالَ (وَإِنِ اسْتَهْلَكَهُمَا) وكه سركه او رنګداره څرمنه ئې هلاك كړله.ضَمِنَ الْخَلَّ نو د سركې به ضامن وی.وَلَمْ يَضْمَنِ الْجِلْدَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] د څرمنې به ضامن نه وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرمائي.يَضْمَنُ الْجِلْدَ مَدْبُوغًا چې د رنګدارې څرمنې به ضامن وی.وَيُعْطِي مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ) او په رنګ كاوه سره چې كومه اضافه شوې ده.هغه به وركولې شي.وَلَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ لَا يَضْمَنُهُ بِالْإِجْمَاعِ. اوكه دا څرمنه دده سره هلاكه شوه.نو بالاجماع به ضامن نه وی.

**تشريح:** كه غاصب ذكر شوې سركه يا رنګدار څرمن د واپس كاوه نه وړاندې هلاك كړل.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به صرف د سركې ضامن وی.د څرمنې به ضامن نه وی.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د رنګداره كيدو په حساب سره د څرمنې هم ضامن وی.او په رنګ سره چې كوم زياتوالې شوې دې.هغه به ده ته وركولې شي.او كه دا څرمنه غاصب سره پخپله هلاكه شوه.نو بالاجماع به ضامن نه وی. ﴿كذا قال الفقيه ابو الليث رحمه الله﴾.

**تشريح:** علامه مرغينانی رحمه الله د اجماعی حكم دليل نه دې ذكر كړې.ددې وجه صاحب د عنايه رحمه الله دا ذكر كړې ده.چه د مجمع عليه د دليل بيانولو اړتيا نه وی.ځكه چې ددې دليل خو پخپله اجماع ده.خو په قول د صاحب د نتائج رحمه الله دا وجه صحيح نه ده.ځكه چې كوم مجمع عليه حكم د دليل محتاج نه وی.هغه دا دې چه هغې باندې د امت اجماع وی.چه دا په دلائل اربعه شرعيه كې يو مستقل دليل دې.حالانكه دلته كې د اجماع نه مراد په ښكاره زمونږ لپاره د آئمه ثلاثه رحمهم الله اجماع ده.د امت اجماع نه ده.ځكه چې د امت اجماع د يوې زمانې د ټولو مجتهدينو په اتفاق سره كيږي.او هغه دلته كې ثابت نه ده.لكه چې په معراج

---

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٤\٩٦) ومجمع الأنهر(٤\٩٧) وردالمحتار (٥\١٤٨) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٦٣)_



الدرايه كې دی: ﴿وعند الأئمة الثلاثة (يعنی مالكا و الشافعی و احمد) لو تخللت الخمر بنفسها و ملكت فی يد الغاصب يضمن و أما إذا تخللت بفعل الغاصب لا يضمن و فی الجلد المدبوغ على قول لا يلزمه رده ولا يضمن و فی قول وجب ردّه و يضمن﴾.

أَمَّا الْخَلُّ،هرچه سركه ده فَلِأَنَّهُ لَمَّا بَقِيَ عَلَى مِلْكِ مَالِكِهِ نو ځكه چې هركله دا د خپل مالك په ملك باندې پاته پاتې شوه.وَهُوَ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ په داسې حال كې چې دا قيمتی مال دې.ضَمِنَهُ بِالْإِتْلَافِ،نو په هلاكاوه سره به ضامن وی.يَجِبُ مِثْلُهُ،او ددې مثل به واجب وی.لِأَنَّ الْخَلَّ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ. ځكه چې د سركه د مثلی څيزونو څخه ده.

**تشريح:** د امام صاحب رحمه الله دليل: ﴿قوله: و أما الخل....﴾ د سركې ضامن كيدو دليل دا دې.چه دا قيمتی مال دې.او ملك په مال باندې پاته دې.ځكه چې د انګورو شيره قيمتی مال وو.چه دا په شراب كيدو سره غيرمتقوم شوې وو.خو ددې په غير متقوم كيدو سره د مالك ملك نه زائل كيږي.هم دا وجه ده.كه د يوكس شراب ئې غصب كړل.نو مالك ته ددې د واپس اخستلو حق وی.معلومه شوه.چه ملك لپاره د تقوم حاجت نه وی.او هركله چې ددې شرابو په سركه كيدو سره د نجاست صفت زائل شو.نو هغه به د مخكې پشان قيمتی شو.دا نه چې ددې تقوم اوس ثابت شوې دې.هركله چې ددې قيمتی كيدل ثابت شو.نو په هلاكاوه سره به ددې ضامن وی.او سركه چونكه د مثلی څيزونو څخه ده.په دې وجه به مثل واجب وی.

وَأَمَّا الْجِلْدُ پاتې شوه څرمنه ، فَلَهُمَا نو د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.أَنَّهُ بَاقٍ عَلَى مِلْكِ الْمَالِكِ حَتَّى كَانَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ نو هغه د مالك په ملك باندې پاته ده.تردې چې هغه ته د اخستلو اختيار وو.دا چې هغه قيمتی مال دې.فَيَضْمَنُهُ مَدْبُوغًا بِالْاِسْتِهْلَاكِ نو د هغې به د رنګدارې څرمنې په حساب ضامن وی.وَهُوَ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ او حال هلاكاوه په وجه، وَيُعْطِيهِ الْمَالِكُ مَا زَادَ الدِّبَاغُ فِيهِ كَمَا إِذَا غَصَبَ ثَوْبًا فَصَبَغَهُ او مالك به ده ته دومره قدرې د وركوی.خومره چې رنګ ور كاوه سره اضافه شوې ده.لكه يوه كپړه غصب كول او رنګ وركول.ثُمَّ اسْتَهْلَكَهُ بيا ئې دا ضائع كړله.وَيَضْمَنُهُ نو ددې به ضامن وی.وَيُعْطِيهِ الْمَالِكُ مَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ،او ده ته به دومره وركوی.خومره چې رنګ زياتوالې كړې دې.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل: ﴿قوله: و اما الجلد....﴾ پاتې شوه څرمنه نو په دې اړه كې د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دا هم په ملك د مالك باندې پاته دې.او قيمتی مال دې.د قيمتی كيدو ثبوت خو موږ پورته پيش كړو.او د مالك په ملك باندې د پاته پاتې كيدو وجه دا ده.چه غاصب په دې كې سوا د صنعت نه بله كومه خبره نه ده پيدا كړې.او صرف په دومره خبرې سره د مغصوب ملك نه زائل كيږي.په دې وجه مالك ته ددی د اخستلو اختيار وو.نو د هلاكاوه په وجه به غاصب ددې د رنګ كيدو په حساب سره ضامن وی.او په رنګ سره چې كوم زياتوالې شوې دې.هغه به ده ته مالك واپس وركوی.لكه چې يوه كپړه غصب كړې.او د رنګ كاوه نه روسته ئې ضائع كړې.نو هغه ددې رنګ شوې كپړې ضامن كيږي.او په رنګ سره چې كوم زياتوالې شوې دې.هغه مالك ده ته واپس وركوی.

وَلِأَنَّهُ وَاجِبُ الرَّدِّ،او ځكه چې ددې واپس كول واجب وو.فَإِذَا فَوَّتَهُ عَلَيْهِ او كله چې ده هلاك كړو.خَلَفَهُ قِيمَتُهُ كَمَا فِي الْمُسْتَعَارِ. نو ددې په ځاې به ددې قيمت وی.لكه څنګه چې په مال مستعار كې كيږي.وَبِهَذَا فَارَقَ الْهَلَاكَ بِنَفْسِهِ. او په دې سره فرق اوشو.پخپله هلاكيدو كې،

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دوهم دليل: دا د صاحبينو رحمهما الله دوهم دليل دې.كه دا څرمنه نه وه هلاكه شوې.بلكه موجوده وې.نو ددې واپس كول واجب وو.كله چې غاصب دا هلاك كړله.نو اوس دې ددې په ځاې قيمت واجب وی.لكه څنګه چې په مال مستعار كې كيږي.كه يو شې ئې عاريت واخستلو.(چې د هغې واپس كول واجب وی) او بيا ئې هغه پخپله ضائع كړو.نو ددې په ځاې ددې د قيمت ضامن كيږي. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائي.چه په دې سره هلاكاوه او پخپله هلاكدو كې توپير اوشو.يعنی پخپله هلاكيدو كې به ضامن نه

وي.

وقولهما يعطي ما زاد الدباغ فيه محمول على اختلاف الجنس. او د صاحبينو رحمهما الله قول «يعطي ما زاد الدباغ فيه» په اختلاف د جنس باندې محمول دی. أما عند اتحاده فيطرح عنه ذلك القدر او د جنس د اتحاد په وخت به په دومره اندازه كمولې شي. ويؤخذ منه الباقي لعدم الفائدة في الأخذ منه ثم في الرد عليه خكه چې دده نه اخستل، او بيا ده ته واپس كاوه كې هيڅ فائده نشته.

**تشريح:** يعنى صاحبينو رحمهما الله چې دا فرمائيلي دي ،،چه په رنګ سره كوم زياتوالې شوې دې هغه دې وركړې شي ،، دا په دې باندې محمول دې چه د غاصب نه كوم تاوان واخستلې شي هغه يو جنس وي او كوم چې وركړې شي هغه بل جنس وي په دې طريقه چې قاضي د څرمنې قيمت دراهمو سره او د رنګ قيمت دنانير سره اولګولو. تردې چې جنس مختلف شو او كه جنس متحد وي نو ددې ارتيا نشته بلكه غاصب ته چې څه وركول دي هغه ددې دده د ذمې نه كم كړي پاته دې واخلي خكه چې دده نه اخستل او بيا ده ته واپس كاوه كې هيڅ فائده نشته.

## د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل

وله د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. أن التقوم حصل بصنع الغاصب چې تقوم د غاصب فعل سره حاصل شوې دې. وصنعته متقومة او دده صنعت (كاريګرې) قيمتي دې. لاستعماله مالا متقوما فيه، او په دې كې د قيمتي مال استعمالولو په وجه، ولهذا كان له أن يحبسه په دې وجه غاصب ته ددې د منع كاوه اختيار شته دې. حتى يستوفي ما زاد الدباغ فيه تردې چې هغه حاصل كړي كوم چې رنګ كاوه سره زياتوالې شوې دې. فكان حقا له نو دا دده حق دې. والجلد تبع له في حق التقوم او څرمنه د قيمتي كيدو په حق كې ددې تابع ده. ثم الأصل وهو الصنعة غير مضمون عليه بيا اصل يعنى صنعت په ده باندې مضمون نه دې. فكذا التابع، كما إذا هلك من غير صنعه، نو هم دغه ډول به تابع هم مضمون نه وي لكه كه دا دده د فعل نه بغير هلاك شي.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چه دلته كې كوم تقوم حاصل شوې دې هغه د غاصب د صنعت (او كاريګرې) په وجه پيدا شوې دې ددې مطلب دا دې چه ده په څرمنه كې يو قيمتي مال استعمال كړې دې په دې وجه غاصب ته دا اختيار شته كه څرمنه هغه وخته پورې خان سره اوساتي چه ددې په رنګ كاوه كې كوم زياتوالې شوې دې هغه حاصل كړي نو دا دده حق دې نو څرمنه د تقوم په حق كې تابع شوه او اصل يعنى صنعت غاصب باندې ضمان (تاوان) نه دې نو تابع به هم ضمان نه وي لكه كه دا د غاصب دفعل نه بغير پخپله هلاك شي نو بالاتفاق به ضامن نه وي.

بخلاف وجوب الرد حال قيامه په خلاف د واپسۍ واجب كيدلو، ددې د موجود كيدو په حالت كې، لأنه يتبع الملك، خكه چې دا خو د ملك تابع دې. والجلد غير تابع للصنعة في حق الملك او څرمن د ملك په حق كې د صنعت تابع نه ده. لثبوته قبلها وإن لم يكن متقوما، خكه چې ملك خو ددې نه مخكې ثابت وو اګرچه قيمتي نه وو. بخلاف الذكي والثوب په خلاف د رنګدار څرمنې او د كپړې، لأن التقوم فيهما كان ثابتا قبل الدبغ والصبغ خكه چې ددې قيمتي كيدل د رنګ كاوه نه مخكې وو. فلم يكن تابعا للصنعة، نو هغه د صنعت تابع نشو.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول «و لانه واجب الرد» خواب دې چه په خلاف د واپسۍ واجبيدو، چې دا خو د ملك تابع دې او څرمنه د ملكيت په حق كې د رنګ والي تابع نه ده خكه چې ملكيت خو د غاصب د صنعت نه مخكې ثابت وو اګرچه قيمتي نه وو حاصل دا چې د ضمان اعتماد په تقوم دې او په تقوم كې اصل صنعت دې او صنعت مضمون نه دې نو كوم چې ددې تابع دې هغه به هم مضمون نه وي او د واپسۍ اعتماد په مالك دې او په ملك كې اصل څرمنه ده نو ددې واپسي به واجب وي او صنعت به ددې تابع وي او د صاحبينو د قول «كما إذا غصب ثوبا» خواب دا دې چه د رنګدارې څرمنې او كپړې قيمتي كيدل د رنګ



ور كاوه نه مخكې ثابت وو نو دا د غاصب د صنعت تابع نشو.

ولو كان قائما او كه ذكر شوې مال موجود وي. فأراد المالك أن يتركه على الغاصب في هذا الوجه او مالك دا د غاصب په ذمه پريږدي. ويضمنه قيمته او ددې د قيمت تاوان اخستل اوغواړي. قيل: نو وئيلې شوي دي. ليس له ذلك، چې ده ته دا اختيار نشته. لأن الجلد لا قيمة له، خكه چې د كچه څرمنې هيڅ قيمت نه وو. بخلاف صبغ الثوب په خلاف د رنګينې كپړې، لأن له قيمة. چې ددې قيمت وو. وقيل او وئيلې شوي دي. ليس له ذلك عند أبي حنيفة، چې دا اختيار د امام ابوحنيفه رحمه الله په نه دې. وعندهما له ذلك، د صاحبينو رحمهما الله په نيز دې. لأنه إذا تركه عليه خكه چې هركله مالك څرمنه د غاصب په ذمه پريخودله. وضمنه عجز الغاصب عن رده او تاوان ئې واخستلو نو ددې د واپس كاوه نه عاجز شو. فصار كالاستهلاك نو دا د هلاك كاوه پشان شو. وهو على هذا الخلاف على ما بيناه. چې هم په دې اختلاف دې.

**تشريح:** او هغه رنګداره څرمنه چې هغې ته په څه قيمتي رنګ سره رنګ وركړې شوې دې غاصب سره موجود ده او مالك دا اوغواړي چه دا د غاصب په ذمه پريږدي ددې قيمت تاوان واخلي نو بعضو مشائخو وئيلې دي چه بالاتفاق مالك ته دا اختيار نشته خكه چې د رنګ كاوه نه مخكې د مردارې څرمنې هيڅ قيمت نه وو په خلاف د رنګينې كپړې، چې د رنګ كاوه نه مخكې ددې قيمت وو او بعضو مشائخو وئيلې دي چه اختيار نه كيدل د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز نشته او د صاحبينو رحمهما الله په نيز مالك ته دا اختيار شته نو دا مسئله اختلافي ده وجه دا ده چه كوم مالك څرمنه د غاصب په ذمه پريخودله او د هغه نه ئې تاوان واخستلو او د رنګ قيمت ئې وانخستلو نو غاصب ددې د واپس كاوه نه عاجز شو نو داسې شوه لكه چې غاصب پخپله هلاك كړو او د هلاكاوه په صورت كې هم دغه ډول اختلاف دې.

ثم قيل: بيا وئيلې شوي دي. يضمنه قيمته جلدا مدبوغا چې د رنګدارې څرمنې د قيمت تاوان دې واخلي. ويعطيه ما زاد الدباغ فيه كما في الاستهلاك. او په رنګ كاوه سره چې كوم زياتوالې شوې دې هغه دې غاصب ته وركړي لكه څنګه چې په هلاكاوه كې كيږي. وقيل او وئيلې شوي دي. يضمنه قيمته جلدا ذكيا غير مدبوغ، چې د مذبوح بې رنګه څرمنې د قيمت تاوان دې واخلي.

**تشريح:** بيا هركله چې د صاحبينو رحمهما الله په نيز مالك ته د تاوان اخستلو اختيار شته نو په قول د بعضو مشائخو د بې رنګه څرمنې قيمت دې تاوان واخلي او په رنګ سره چې كوم زياتوالې شوې دې هغه دې غاصب ته وركړي لكه څنګه چې د هلاكاوه په صورت كې كيږي او په قول د بعضو مشائخو دې د بې رنګه څرمنې قيمت تاوان واخلي. (د رنګ حق دې نه وركوي).

ولو دبغه بما لا قيمة له كالتراب والشمس او كه څرمنه ئې په داسې شي سره رنګ كړله چه د هغې هيڅ قيمت نه وي لكه خاوره، او دهوپ، فهو لمالكه بلا شيء نو هغه به ددې د مالك وي. لأنه بمنزلة غسل الثوب. خكه چې دا د كپړې وينځلو په مرتبه كې دې. ولو استهلكه الغاصب او كه غاصب دا هلاك كړل. يضمن قيمته مدبوغا. نو د رنګدارې د قيمت به ضامن وي. وقيل او وئيلې شوي دي. طاهرا غير مدبوغ، چې د مذبوح بې رنګه به ضامن وي. لأن وصف الدباغة هو الذي حصله خكه چې غاصب وصف د رنګ والي پيدا كړې دې. فلا يضمنه. نو هغه به ددې ضامن نه وي. وجه الأول وعليه الأكثرون او رومبې قول په كوم چې اكثر مشائخ دي ددې وجه دا ده. أن صفة الدباغة تابعة للجلد چې وصف د رنګ والي د څرمنې تابع دې. فلا تفرد عنه، نو ددې څخه به نه جلا كيږي. وإذا صار الأصل مضمونا عليه او هركله چې اصل څرمنه په ده مضمون شوه. فكذا صفته، نو هم دغه ډول به ددې صفت هم وي.

**تشريح:** مذكوره تفصيل خو په دې صورت كې وو. كله چې غاصب څرمنه په داسې شي سره رنګ كړې وي چه

دهغې قيمت شته.او كه په داسې شي سره رنګ وركړي.چه دهغې قيمت نشته.لكه خاوره ئې اولګوله.يا ئې په دهوپ كي كيخودله.او پخه ئې كړله.نو دا به د مالك لپاره مفت وي.ځكه چې دا هم داسې دي.لكه كپړه غصب كول، او وينځل.او كه په دې صورت كي دا غاصب هلاك كړله.نو د جمهور مشائخو په نيز به د رنګ دار ځرمنې د قيمت ضامن وي.او د بعضو په نيز به د مذبوح بې رنګه ځرمنې ضامن وي.ځكه چې غاصب وصف د رنګوالي پيدا كړې دي.نو هغه به ددې ضامن نه وي.د ړومبي يعنې د اكثرو مشائخو د قول دليل دا دې.چه وصف د رنګ خو د ځرمنې تابع دې.نو د ځرمنې څخه به نه جلا كيږي.او هركله چې په ده د اصل ځرمنې ضمان واجب شو.نو هم دې وصف سره به واجب وي.

## د مغصوبه شرابو نه د سركې جوړولو حكم

وَلَوْخَلَّلَ الْخَمْرَبِإِلْقَاءِالْمِلْحِ فِيهِ كه په شرابو كي ئې مالګه واچوله. او سركه ئې جوړه كړله. قَالُواعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ: صَارَ مِلْكًالِلْغَاصِبِ نو مشائخو وئيلي دي.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هغه د غاصب ملك شو. وَلَاشَيْءَ لَهُ عَلَيْهِ.او په باندې هيڅ لازم نه دي. وَعِنْدَهُمَا أَخَذَهُ الْمَالِكُ او د صاحبينو رحمهما الله په نيز دې مالك دا واخلي. وَأَعْطَى مَازَادَالْمِلْحُ فِيهِ عِلْهِ بِمَنْزِلَةِ صَبْغِ فِي دَبَاغِ الْ تړوك ،او مالګې چې كوم زياتوالې كړې دي.هغه دې وركړي.په مرتبه د ځرمنې د رنګ كولو . وَمَعْنَاهُ هَاهُنَا أَنْ يُعْطِيَ مِثْلَ وَزْنِ الْمِلْحِ مِنَ الْخَلِّ ،او دلته ددې مطلب دا دې.چه د سركې نه دې مالګه د وزن په برابر وركړي.

**تشريح:** كه غاصب په شرابو كي مالګه واچوله.او سركه ئې جوړه كړله.نو اكثرو مشائخو وئيلي دي.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا سركه د غاصب ملك وي.او په ده به څه تاوان هم لازم نه وي.ځكه چې شراب د مسلمان په حق كي متقوم نه دي.او مالګه قيمتي وه.نو غاصب غيرمتقوم شي واخستلو.او خپل متقوم مال سره ئې قيمتي جوړ كړې دي.نو د غاصب اړخ ته به ترجيح وي.نو دې به د څه تاوان نه بغير ددې مالك كيږي.د صاحبينو رحمهما الله په نيز حكم دا دې.چه مالك دې خپل شراب واخلي.او په مالګې زياتولو سره چې كوم زياتوالې شوې دې.هغه دې وركړي.لكه څنګه چې په ځرمن رنګ كاوه كي دي.

وَإِنْ أَرَادَالْمَالِكُ تَرْكَهُ عَلَيْهِ او كه مالك دا سركه د غاصب په ذمه پريږدي. وَتَضْمِينَهُ او د هغه نه تاوان اخستل اوغواړي فَهُوَعَلَى مَاقِيلَ. نو دا مشائخو په هغه دوې (دوه) اقوالو باندې دي. وَقِيلَ فِي دَبَاغِ الْ تړوك او وئيلي شوي دي چې كوم چې د ځرمنې د رنګ په اړه كي دي. وَلَوِاسْتَهْلَكَهَا او كه هلاك ئې كړي لَايَضْمَنُهَا عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ نو د امام ابوحنيفه پر(په)نيز نه ضامن كيږي خِلَافًا لَهُمَا خلاف ثابت دې د صاحبينو كَمَافِي دَبَاغِ الْ تړوك، لكه څنګه چې د ځرمنې پر(په)رنګ كولو كښې اختلاف دي

**تشريح:** په ذكرشوې صورت كي كه مالك دا اوغواړي.چه ذكر شوې سركه د غاصب په ذمه پريږدي.او هغه نه تاوان واخلي.نو په دې اړه كي د مشائخو هم هغه دوې (دوه) اقواله دي.كوم چې د ځرمنې د رنګ كاوه په مسئله كي ذكر شو.يعنې ① د بعضو په نيز بالاتفاق مالك ته دا اختيار نشته.ځكه چې سركه اچولو نه مخكې د شرابو هيڅ قيمت نه وو. ② اوبه قول د بعضو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز حكم هم دغه دې.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز مالك دده نه تاوان اخستې شي.او كه غاصب ذكر شوې سركه هلاكه كړله.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به ضامن نه وي.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز به ضامن وي.لكه څنګه چې د رنګ كاوه نه روسته د هلاكاوه حكم دي.

وَلَوْخَلَّلَهَا بِإِلْقَاءِالْخَلِّ فِيهَا ،او كه سركه جوړه كړي د هغې نه پر(په)اچولو د سركې سره پر(په)هغې دواړو كښې فَعَنْ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رحمه الله نه روايت دې. أَنَّهُ إِنْ صَارَخَلًّامِنْ سَاعَتِهِ كه دا هم دغه وخت سركه شوه. يَصِيرُ مِلْكًالِلْغَاصِبِ نو دا به د غاصب ملك وي. وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ او هيڅ به واجب نه وي. لِأَنَّهُ اسْتِهْلَاكٌ لَهُ ځكه چې دا ددې هلاكول دي. وَهُوَغَيْرُمُتَقَوِّمٍ او حال دا چې دا قيمتي نه دي. وَإِنْ لَمْ يَصِرْخَلًّا إِلَّا بَعْدَزَمَانٍ اوكه دا سركه نشوه.خو د



يوې مودې نه پس، بِأَنْ كَانَ الْمُلْقَى فِيهِ خَلًّاقَلِيلًا په دې طريقه چې كومه سركه ئې په دې كي واچوله، هغه كمه وه. فَهُوَبَيْنَهُمَا عَلَى قَدْرِكَيْلَيْهِمَا نو دا سركه به په دې دواړو كي ددوی د پيمانې په اندازه مشترك وي. لِأَنَّ خَلْطَ الْخَلِّ بِالْخَلِّ فِي التَّقْدِيرِ ځكه چې دلته كي ده ګويا په سركه كي سركه ملاؤ كړې ده. وَهُوَعَلَى أَصْلِهِ لَيْسَ بِاسْتِهْلَاكٍ او دا د امام محمد رحمه الله په اصول باندې قصداً هلاكول نه دي.

**تشريح:** كه غاصب په ذكرشوې شرابو كي سركه واچوله.او ددې په ذريعه ئې د شرابو نه سركه جوړه كړله.نو د امام محمد رحمه الله نه روايت دې.كه دا په سركه اچولو سره هم دغه وخت سركه شوه.نو هغه به د غاصب ملك وي.او په ده به څه تاوان هم لازم نه وي.ځكه چې ده شراب په داسې حالت كي ختم كړل.چه هغه څه قيمتي مال نه وو.اوكه هغه څه موده روسته سركه شوه.مثلاً ځكه چې كومه سركه ئې په دې كي اچولې وه.هغه ډيره كمه وه.نو په دې صورت كي به دا سركه د مالك او غاصب په منځ كي ددې د پيمانې په اندازه مشترك وي.ځكه چې دلته كي اګرچه سركه په شرابو كي ملاؤ شوې ده.او سركه او شراب دوې (دوه) مختلف جنسونه دي.اود مختلف جنسونو ملاوول هلاكول نه دي.خو تقديراً په سركه كي سركه ملاوول دي.يعنې ګويا چې ده په سركه كي سركه ملاؤ كړله.اګرچه دا د ملاوولو په وخت شراب وو.او سركه د سركې سره ملاوول د امام محمد رحمه الله په اصول باندې هلاكول نه دي.او د امام ابويوسف رحمه الله هم دا قول دي.

وَعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ هُوَلِلْغَاصِبِ فِي الْوَجْهَيْنِ ،او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دا په دواړو صورتونو كي غاصب لپاره وي. وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ ،او په ده به هيڅ واجب نه وي. لِأَنَّ نَفْسَ الْخَلْطِ اسْتِهْلَاكٌ عِنْدَهُ ،ځكه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خالي ملاوول په قصد سره هلاكول دي. وَلَاضَمَانَ فِي الِاسْتِهْلَاكِ ،لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مِلْكَ نَفْسِهِ. او دلته په هلاكاوه كي تاوان ځكه نشته.چه ده خپل ملك هلاك كړې دي.

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كه هم دغه وخت سركه شي.كه د څه مودې نه روسته سركه شي.په دواړو صورتونو كي به غاصب ددې مالك كيږي.او څه تاوان به هم واجب نه وي.ځكه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خالي ملاوول هلاكول نه دي.او دلته په هلاكاوه كي تاوان ځكه لازم نه دې.چه ده هم خپل قيمتي مال (سركه) په داسې شي كي واچوله.چه هغه متقوم نه دې.او هغه شراب دي.او تاوان نه پخپل ملك هلاكاوه سره واجبيږي.او نه د غير متقوم شي په هلاكاوه سره واجبيږي.

وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ لَايَضْمَنُ بِالِاسْتِهْلَاكِ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لِمَابَيَّنَّا. او د امام محمد رحمه الله په نيز به ړومبي صورت كي هلاكاوه سره نه ضامن كيږي.په ذكر شوې دليل سره، وَيَضْمَنُ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي ؛او په دوهم صورت كي به ضامن وي. لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مِلْكَ غَيْرِهِ. ځكه چې ده د غير ملك هلاك كړې دې. وَبَعْضُ الْمَشَايِخِ أَجْرَوْاجَوَابَ الْكِتَابِ عَلَى إِطْلَاقِهِ او بعضو مشائخو د كتاب خواب ددې په اطلاق باندې ساتلې دې. أَنَّ لِلْمَالِكِ أَنْ يَأْخُذَ الْخَلَّ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ؛ چې مالك ته په ټولو صورتونو كي د سركې د مفت اخستلو اختيار دې. لِأَنَّ الْمُلْقَى فِيهِ يَصِيرُ مُسْتَهْلَكًا فِي الْخَمْرِ ځكه چې كوم شي اچولې شوې دې.هغه په شرابو كي ختم شو. فَلَمْ يَبْقَ مُتَقَوِّمًا. نو هغه قيمتي پاتې نشو. وَقَدْ كَثُرَتْ فِيهِ أَقْوَالُ الْمَشَايِخِ وَقَدْ أَثْبَتْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهَى او په دې اړه كي د مشائخو اقوال مختلف دي.كوم چې موږ په كفاية المنتهى كي بيان كړي دي.

**تشريح:** د ړومبي صورت نه مراد دا دې.كله چې شراب هم هغه وخت سركه شوې وي.په دې صورت كي د امام محمد رحمه الله په نيز د هلاكاوه په وجه نه ضامن كيږي.ځكه چې ده شراب ددې د بې قدره كيدو په حالت كي هلاك كړي دي.او په دوهم صورت كي ( كله چې شراب څه موده روسته سركه شوې وي ) هلاكاوه سره به ضامن وي.چه ده د غير ملك هلاك كړې دې.يعنې هغه شراب نه وو.بلكه ګويا سركه وه.نو ضامن اوګرځولې شو.ځكه چې متقوم مال دې.

## د څانو او لوبو آلاتو ماتولو سره د ضمان حكم

قَالَ (وَمَنْ كَسَرَ لِمُسْلِمٍ بَرْبَطًا أَوْ طَبْلًا أَوْ مِزْمَارًا أَوْ دُفًّا) که یوکس د مسلمان باجه یا ډهولکې، یا دنبوره (ستار) یا تنبل (دوپړئ) ماته کړله. (أَوْ أَرَاقَ لَهُ سَكَرًا أَوْ مُنَصَّفًا) یا د مسلمان څه د نشې شئ یا منصف شراب توئې کړل. (فَهُوَ ضَامِنٌ) نو هغه به ضامن وي. (وَبَيْعُ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ جَائِزٌ) او ددې څيزونو بيع جائز ده. وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ. دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی. وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: صاحبين رحمهما الله فرمائي. لَا يَضْمَنُ چې ضامن به نه وي. وَلَا يَجُوزُ بَيْعُهَا. [1] او ددې څيزونو بيع جائز نه ده.

**تشريح: حل اللغة:** كسر (ض) كسراً ماتول، بربط: په قول د ليث عجمي معرب دې.چه د،، بـر،، په معنی د سينې او ،، بـط،، نه مركب دې.دا يو خاص قسم باجه ده. **طبل:** ډهولكې، **مزمار:** باجه، **دف:** تنبل،دوپړئ، **اراق اراقة:** بهيول، توبول، **سكر:** شراب، هرنشه ور څيز، د انګورو يا د تارو( يو ډول ونه) كچه (نشه دار) رس كوم چې زګ سره تينګک شی. **منصف** شراب چې دومره پاخه كړې شی.چه نيم پاتې شی. **لهو:** لوبه، كهيل، **غزاه:** د غازي جمع ده،جهاد كونكې، **عرس:** د واده خوشحالی ، **في** كچه اوبه، **رطب:** پخې تازه كجورې، **اشتد اشتداداً:** تنګيدل، مضبوطيدل، **طبخ** (فمن): پخول، **باذق بادة:** د انګورو شيره معمولی شان پخه شوې، **معصيه:** ګناه،

**تشريح:** كه يو سړې د بل كس د ګانو بجانو آلات،باجه ، ډهولكې، تنبل ( دوپړئ) ستار( دنبوره) وغيره مات كړی.يا دده سكر(عام د نشې څيز) يا منصف شراب توئې كړی.نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به دې ضامن وي.او ددې څيزونو بيع جائز ده.

**د صاحبينو او د ائمه ثلاثه رحمهم الله مسلك@** د صاحبينو رحمهما الله ،دآئمه ثلاثه رحمهم الله اودعامو عالمانو په نيز به دې ضامن نه وي.او ددې څيزونو بيع هم ناجائز ده.

وَقِيلَ او ونيلی شوی دی. الْإِخْتِلَافُ فِي الدُّفِّ وَالطَّبْلِ الَّذِي يُضْرَبُ لِلَّهْوِ. چې اختلاف په هغه تنبل او ډهولكی كې دې.كوم چې د لهو (او لوبو) لپاره غږولې شی. فَأَمَّا طَبْلُ الْغُزَاةِ پاتې شو د غازيانو ډهولكې وَالدُّفُّ الَّذِي يُبَاحُ ضَرْبُهُ فِي الْعُرْسِ او هغه تنبل د كوم چې په واده كي غږول جائز دی. يُضْمَنُ بِالْإِتْلَافِ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ.نو د هغې په هلاكاوه كې به بلا خلاف ضامن وي.

**تشريح:** بعضو عالمانو ونيلی دی.چه مذكوره اختلاف په هغه تنبل او ډهولكی كې دې.كوم چې د لهو (لوبو) لپاره غږولې شی.پاتې شو د غازيانو ډهولكې او د نكاح تنبل، نو ددې په ماتولو كې به بلا خلاف ضامن وي.خو په ذخيره كې د فقيه ابوالليث رحمه الله قول نقل دې.چه د نكاح تنبل غږول د عالمانو په نيز مختلف فيه دی.بعضو دې ته مكروه ونيلی دی.او بعضو مكروه نه دی ونيلی.پاتې شو هغه تنبل، كوم چې زموږ په زمانه كې په صبيحات او جلالات (په ښائسته ماشومانو او ګونګروګانو) سره غږولې شی.نو دا مكروه (حرام) كيدل ښكار دی.او شيخ عتابي رحمه الله په شرح جامع صغير كې ونيلی دی.كه د حج د ښكار يا د يو ماشوم ډهولكې وي.كوم چې هغه كور كې غږوی.نو د هغې په ماتولو سره به بالاتفاق ضامن وي.

وَقِيلَ او ونيلی شوی دی. الْفَتْوَى فِي الضَّمَانِ عَلَى قَوْلِهِمَا. چې د تاوان اره كې فتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده. وَالسَّكَرُ اسْمٌ لِلنِّيءِ مِنْ مَاءِ الرُّطَبِ إِذَا اشْتَدَّ. او ،، سكر،، د كجورو د كچه نشه دار رس نوم دې.كله چې تينګک شی. وَالْمُنَصَّفُ مَا ذَهَبَ نِصْفُهُ بِالطَّبْخِ. او منصف هغه دې.چه د هغې نيم ختم شی په پخولو سره، وَفِي الْمَطْبُوخِ أَدْنَى طَبْخَةٍ او په پخولو كي معمولي شان پخې شوې دی. وَهُوَ الْبَاذِقُ او هم دا شراب دی. عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رِوَايَتَانِ د امام ابوحنيفه رحمه الله نه دوې (دوه) روايتونه دی. فِي التَّضْمِينِ په ضامن كيدو، وَالْبَيْعِ. او بيع جائز كيدو كې ،

[1] القول الراجح موقول الصاحبين رحمهما الله كذا فی ملتقی الأبحر(۹۸\۱٤) والدرالمختار(۵\۱٤۹۱) ومجمع الأنهر (۹۸\۱٤) والهندية (۱۳۱\۵)نقلاً عن القول الراجح (۲۶۵\۲)



**تخريج:** په جامع ابواليسر، كافي ، منح،الدر المنتقی ، زيلعی ، قهستاني ، برجندي وغيره كې دی.چه فتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.چه باجې ماتولو والا، او سكر ( د نشې څيز)، او منصف شراب بهيولو والا به ضامن نه وي.

لَهُمَا د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې. أَنَّ هَذِهِ الْأَشْيَاءَ أُعِدَّتْ لِلْمَعْصِيَةِ چې دا شيان د معصيت لپاره تيار كړې شوی دی. فَبَطَلَ تَقَوُّمُهَا كَالْخَمْرِ،نو ددې قيمتی كيدل باطل شو.د شرابو پشان، وَلِأَنَّهُ فَعَلَ مَا فَعَلَ او څكه چې دكوم څه كړې دی. آمِرًا بِالْمَعْرُوفِ دا نې امر بالمعروف كړې دې. وَهُوَ بِأَمْرِ الشَّرْعِ چې دا د شريعت په حكم سره دی. فَلَا يَضْمَنُهُ كَمَا إِذَا فَعَلَ بِإِذْنِ الْإِمَامِ.نو دې به ضامن نه وي.لكه كه دې د امام ( حاكم) په حكم داسې اوكړی.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه دا شيان د معصيت ( ګناه) لپاره وی.په دې وجه ددې تقوم ساقط دې.او ده چې كوم څه كړی.دا نې د شارع د منشاء موافق كړی دی.قال ﷺ : «بعثت لكسر المزامير و قتل الخنازير» ددې سره ده په ماتولو سره د أمربالمعروف او نهی عن المنكر حق ادا كړې دې.قال النبي ﷺ : «إذا رأى أحد كم منكراً فليغيره بيده فإن لم يستطع فبلسانه فإن لم يستطع فبقلبه و ذالك أضعف الإيمان و ما على المحسنين سبيل» او دا داسې شوه.كه دې د امام يعنی د شريعت د نائب (حاكم) په حكم داسې اوكړی.نو بالاتفاق به ضامن نه وي.لكه چې د فتاوی الكبری د،، كتاب الجنايات،، په آخر كې دی. «كسروا الخمر إن كان بإذن الإمام لايضمن و إلا ضمن».

## د امام صاحب رحمه الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې. أَنَّهَا أَمْوَالٌ لِصَلَاحِيَّتِهَا لِمَا يَحِلُّ مِنْ وُجُوهِ الْإِنْتِفَاعِ وَإِنْ صَلُحَتْ لِمَا لَا يَحِلُّ چې دا هم مالونه دی.د انتفاع د حلالو طريقو د لائق كيدو په وجه، اګرچه د داسې طريقو لايق هم دی.چه هغه حلال نه دی. فَصَارَ كَالْأَمَةِ الْمُغَنِّيَةِ. نو ددې حال د ګانو ويونكې وينځې پشان شو. وَهَذَا لِأَنَّ الْفَسَادَ بِفِعْلِ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ او دا څكه دې.چه فساد د فاعل د مختار په فعل سره دې. فَلَا يُوجِبُ سُقُوطَ التَّقَوُّمِ،نو دا به موجب د تقوم د سقوط نه وي. وَجَوَازُ الْبَيْعِ وَالتَّضْمِينِ مُرَتَّبَانِ عَلَى الْمَالِيَّةِ وَالتَّقَوُّمِ او د بيع جواز او تاوان په ماليت او تقوم باندې مرتب دې.

**حل اللغة: مغنيه:** ګانې ويونكې، **امراء:** د امير جمع ده په معنی د حاكم، **لسان:** ژبه، **لهو:** لوبې، كهيل، **كبش:** د دوو يا څلور كالو ګډ، **تطوح:** جنګک كونكې؛ په ښكر وهونكې، **حمامة:** كونتره، طياره: ډيوه الوتونكې، **ديك:** چرګک، **صليب:** سولئ، ( په دې شكل (+) لرګې چې عيسايان به پرې پانسی كولي شو.چه اوس ددوی مقدس نښان دې

**تشريح:** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دا شيان ذاتی لحاظ سره قيمتی دی.اګرچه ددې نه ناجائز فائده اخستلې شی.خو په غلط استعمالولو سره ماليت نه باطليږی.نو ضامن به وي.او ددې حال د ګانو ويولكې د ښځې پشان دې.كه ددې نه د ګانو ونيلو كار واخستلې شی.نو حرام دې.اوكه د خدمت وغيره كار واخستلې شی.نو حلال دې.دغه ډول سكر( د نشې شيان (څيزونه )) او د منصف شرابو استعمال د لهو ( عبث) په طور ناجائز دې.او كه سركه جوړه كړې شی.نو حلال دې.وجه دا ده.چه د حرامو كار اخستل، خو د فاعل مختار اختياری فعل سره دې.په محل كي هيڅ فساد نشته.محل خو قيمتی مال دې.نو په هلاكاوه سره به ضامن وي.بيا ددې بيع جائز كيدل، او تاوان واجبيدل، ددې په ماليت او تقوم باندې مرتب دې.او په دې كې ماليت او تقوم اوموندې شو.نو بيع به جائز وي.او هلاكونكې به ضامن وي.

وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ بِالْيَدِ إِلَى الْأُمَرَاءِ لِقُدْرَتِهِمْ او د لاس په ذريعه امر بالمعروف د امراء ( حاكمانو) په حواله دې.د هغوی د قدرت په وجه، وَبِاللِّسَانِ إِلَى غَيْرِهِمْ،او په ژبه د نورو خلګو لپاره دې.

**تشريح:** د صاحبينو رحمهما الله د قول «كما إذا فعله بـإذن الإمـام» سره متعلق دې.مطلب دا دې.چه د لاس په ذريعه امر بالمعروف د امراء ( حاكمانو) په حواله دې.څكه چې دا قدرت حاكم او سلطان ته حاصل دې.او د نورو خلګو لپاره صرف په ژبه منع كول دی.نو هركله چې ده د بل مال د امام (او حاكم) د اجازت نه بغيرهلاك كړو.نو ضامن به وي.

**وَتَجِبُ قِيمَتُهَا غَيْرَ صَالِحَةٍ لِلَّهْوِ كَمَا فِي الْجَارِيَةِ الْمُغَنِّيَةِ** او ددې قيمت به د لهو د نه لائق كيدو په حساب سره واجب وى.لكه د گانو والا وينخه، **وَالْكَبْشِ النَّطُوحِ** جنگ كونكى گډان، **وَالْحَمَامَةِ الطَّيَّارَةِ** الوتونكي كونترې، **وَالدِّيكِ الْمُقَاتِلِ** د جنگ چرگان، **وَالْعَبْدِ الْخَصِيِّ** او په خصى غلام كي ، **تَجِبُ الْقِيمَةُ غَيْرَ صَالِحَةٍ لِهَذِهِ الْأُمُورِ، كَذَا هَذَا** ددې امورو د نه لائق كيدو په لحاظ سره به قيمت واجب وى.

**تشريح:** يعنى د ذكر شوو څيزونو قيمت به په دې حساب سره واجب وى.چه دا د لهو او لوبو لائق نه دى.د گانو بجانو د څيزونو كيدو په لحاظ سره به قيمت واجب نه وى.لكه څنگه چې په گانو ويونكې وينخه كې صرف د وينځې قيمت واجبيږى.د گانو لحاظ نه كيږى.دغه ډول په جنگ كونكو گډانو،او چرگانو كې ، په الوتونكو كونترو كې صرف د څاروى قيمت واجبيږى.د الوتو او جنگ كولو وغيره لحاظ نه ساتلې كيږى.دغه ډول خصى غلام دې.چه په دې كې د خصى كيدو په لحاظ سره قيمت نه واجبيږى.حاصل دا چې قيمت به په دې لحاظ سره لگولې شى.چه دا شيان ددې كارونو لائق نه دى.

**فائده:** ابو الحسين قدورى رحمه الله په شرح مختصرالكرخى كې ونيلى دى.چه په ډهولكى يا ستار( يوډول باجه چې پكې تارونه لگيدلې وى.. ازمترجم) كې به د لگولې شوى لرگى قيمت واجب وى.فقيه ابوالليث رحمه الله د عالمانو قول ذكر كړې دې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول «يضمن قيمته» معنى دا ده.چه كتلې به شى.كه يوكس دا شئ د لهو او لعب (عيشياتو) نه علاوه د بل څه مقصد لپاره اخلى.نو په څومره قيمت به ئې اخلى ؟ نو هم په هغه اندازه به د قيمت ضامن وى.شيخ فخرالدين قاضى خان فرمائى.چه د تنبل هلاكاوه په صورت كې به د داسې تنبل د صورت ضامن وى.چه هغې كې مالوچ كيخودې شى.او په باجه كې به ددې د كاسې (پيالى) كيدو په لحاظ سره قيمت واجب وى.چه په دې كې ثريد (ډوډۍ ماتولى) كيداى شى.،، و نحو ذالك،،

**وَفِي السَّكَرِ وَالْمُنَصَّفِ تَجِبُ قِيمَتُهُمَا** او په سكر (د نشې په څيزونو) او په منصف شرابو كې ددې قيمت واجب وى. **وَلَا يَجِبُ الْمِثْلُ** او مثل به واجب نه وى. **لِأَنَّ الْمُسْلِمَ مَمْنُوعٌ عَنْ تَمَلُّكِ عَيْنِهِ وَإِنْ كَانَ لَوْ فَعَلَ جَازَ** خكه چې مسلمان منع كړې شوې دې.ددوى د ذات تملك نه، اگرچه جائز به وى.كه ده اوكړل.

**تشريح:** د سكر( د نشې څيز) او د منصف شرابو بهيولو ( او تونيولو) په صورت كې به ددې قيمت واجب وى.مثل به واجب نه وى.اگرچه دا شيان مثلى دى.خكه چې مسلمان ددې څيزونو د ذات د مالك كيدو نه منع كړې شوې دې.چه دا حرام دى.خو كه ده په ضمان كې مثل واخستلو.نو جائز به وى.خكه چې ماليت او تقوم نه دې ساقط شوې.

**وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا أَتْلَفَ عَلَى نَصْرَانِيٍّ صَلِيبًا** او دا ددې خلاف دې.كله ئې چې د يو نصرانى صليب مات كړو. **حَيْثُ يَضْمَنُ قِيمَتَهُ صَلِيبًا** ، چې دې به د هغې د صليب كيدو د قيمت ضامن وى. **لِأَنَّهُ مُقَرٌّ عَلَى ذَلِكَ** خكه چې نصرانى په دې باندې قائم ساتلې شوې دې.

**تشريح:** د ذكرشوى آلاتو په ضمان كې چې كوم حكم پورته ذكر شو.دا ددې صورت خلاف دې.كله چې يو كس د يو نصرانى صليب هلاك كړى.چه په دې كې به د صليب كيدو په لحاظ سره ددې د قيمت ضامن وى.وجه د توپير دا ده.چه ډهولكې، ستار، باجه او شراب وغيره داسې شيان دى.چه ددې د قائم ساتلو حكم نه دې.په خلاف د صليب، چې نصرانى ذمى په دې باندې قائم ساتلې شوې دې.نو دا د شرابو پشان شو.چه ذمى خلگ په شرابو باندې قائم ساتلى شوى دى.د امام احمد رحمه الله په نيز به د صليب ضامن نه وى.

**فائده:** يوسړى د يو كس كپړه غصب كړله.او هم هغه ته ئې واغوستله.يا ئې د يوكس خوراك غصب كړو.او هم په هغه ئې اوخوړلو.او مالك ته دا معلومه نشوه.چه دا هم زما خوراك دې.نو زموږ په نيز به غاصب د تاوان نه برى وى.هم دا د امام مالك او امام شافعى رحمهما الله يو قول دې.كه د يوكس د اس، غوا، يا ميخې وغيره څاروى رسۍ يا د مرغو د پنجرې كهړكۍ يا ئې د غلام زنځيز (هتكړۍ) كلاؤ كړله.او څاروې، او غلام اوتختيدو.يا چوغكه



والوتله.نو زموږ په نيز او په يو قول كې د امام شافعى رحمه الله په نيز به ضامن نه وى.او د امام مالك او د امام احمد رحمهما الله په نيز به ضامن وى.

## د مغصوبه وينځې د مرلو حكم

**قَالَ: (وَمَنْ غَصَبَ أُمَّ وَلَدٍ أَوْ مُدَبَّرَةً** كه يوكس ام ولد يا مدبره وينځه غصب كړله. **فَمَاتَتْ فِي يَدِهِ** او هغه دده سره مړه شوه. **ضَمِنَ قِيمَةَ الْمُدَبَّرَةِ** نو د مدبرې د قيمت به ضامن وى. **وَلَا يَضْمَنُ قِيمَةَ أُمِّ الْوَلَدِ) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ**[1] او د ام ولد د قيمت به ضامن نه وى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،

**تشريح:** كه يوكس د يو سړى ام ولد يا مدبره وينځه غصب كړى.او هغه دده سره مړه شى.نو د امام صاحب رحمه الله په نيز به د مدبره وينځې د قيمت تاوان وركول ضرورى وى.د ام ولد قيمت به لازمى نه وى.

**وَقَالَا:** صاحبين رحمهما الله فرمائى. **يَضْمَنُ قِيمَتَهُمَا** ؛ چې د دواړو د قيمت به ضامن وى. **لِأَنَّ مَالِيَّةَ الْمُدَبَّرَةِ مُتَقَوِّمَةٌ بِالِاتِّفَاقِ** ، خكه چې د مدبرې وينځې ماليت بالاتفاق قيمتى دې. **وَمَالِيَّةُ أُمِّ الْوَلَدِ غَيْرُ مُتَقَوِّمَةٍ عِنْدَهُ** ، او د ام ولد ماليت د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز قيمتى نه دې. **وَعِنْدَهُمَا مُتَقَوِّمَةٌ** ، او د صاحبينو رحمهما الله په نيز قيمتى دې. **وَالدَّلَائِلُ ذَكَرْنَاهَا فِي كِتَابِ الْعَتَاقِ مِنْ هَذَا الْكِتَابِ** او موږ دلائل ددې كتاب په،، كتاب العتاق،، كې ذكر كړي دي

**تشريح: د صاحبينو رحمهما الله مسلك:** د صاحبينو رحمهما الله په نيز به د دواړو د قيمت تاوان وركول لازمى وى.خكه چې د مدبرې وينځې د ماليت قيمتى كيدل خو متفق عليه دى.او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د ام ولد ماليت هم متقوم دې.

و قد ذكرناه فى كتاب العتق)) تم الكتاب فضله تعالى بعد تصحيحه وتعريبه وتشريحاته الجديدة

**تمت بالخير**

[1] القول الراجح هوقول الإمام رحمه الله كذا فى ملتقى الأبحر (٩٨\١٤) ومجمع الأنهر (٩٨\١٤) والدرالمختار (١٤٩\١٥) و الدرالمنتقى (٩٨\١٤) والبحرالرائق (٢٢٧\٨) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٥\٢)

## كتاب الوكالة



## باب الوكالة بالبيع والشراء (فصل في الشراء)



## فصل في التوكيل بشراء نفس العبد





## فصل في البيع



## باب الوكالة بالخصومة والقبض ........ ۹۹



## باب عزل الوكيل ........ ۱۲۱

## كتاب الدعوي



## باب اليمين



## فصل في كيفية اليمين والاستحلاف ..... ۱۵۷



## باب التحالف







## فصل في من لايكون خصما



## باب مايدعيه الرجلان ..... ۱۹۵



## (فصل في التنازع بالأيدي) ..... ۲۱۳



## (باب دعوى النسب): ..... ۲۱۸

[چور (حمله)
[چم (چل)
(ح)
[حکمـي مـرداري (حکمـي نجاست)
(خ)
[خلګ (خلق)
[خلګو (خلقو)
[خپاره (خواره)
(د)
[دغه ډول (دغه شان)
[د عمل وړ (د عمل وړ)
[درلودی (لرلو)
[دريم (دريم)
(ر)
[راسته (ښي)
[رانګ (راتلل)
(ز)
[زموږ (مونږ)
[زېږيدل (پيدائش)
(ژ)
[زموږ (مونږ)
[زېږيدل (پيدائش)
[ژباړې (ترجمې)
[ژباړه (ترجمه)
[ژي (مشکيزه)
[ژوول (جوئيل)
[ژي (مشکيزه)
(س)
[سهار (صبا)
[ساتنه (حفاظت)
[سربيره (دپاسه)
[سراج (ډيوه)
[سلواغه (بوقه)
[ساعتونه (لمحات)
[ساعت (لحمه)
[سراج (ډيوه)
[سپرلۍ (سورلۍ)

[پيوسته (مسلسل)
[پيشی (پيشو)
[پيشلمی (پيشمنې)
[پور (قرض)
[پوست (پوستکې)
[پور (قرضې)
[پوولې (خرولې)
[پښو (خپو)
[پښې (خپې)
[پوول (خرول)
[پلنډه (تان)
[پرېښودې (پريخودې)
(ت)
[توانګر (مالدار)
[توپير (فرق)
[توپير (توپير (تبديلی) )
[تيخرګ (ترخ)
[توان (طاقت)
[توپير (تبديلی)
(ټ)
[ټوک (جلد)
(ث)
[ټوک (جلد)
(ج)
[جلا (جدا)
[جلا جلا (جدا جدا)
(چ)
[چوپوالې (خاموشی)
[چپه (ګس)
[چوپ (چپ)
[چم (چل)
[چنګوښه (چيندخ)
[چوغکه (مرغۍ)
[چتلي (ګندګی)
[چمپلان (څپلۍ)
[چاغه (تياره)
[چمپلان (څپلۍ)

[امله (وجې)
[اړخ (طرف)
[انډيوال (ملګری)
[اوپريمنځل (اووينځل)
[اړتيا (ضرورت)
[اړه (باره)
[الغه (حلقه)
[اخته (مبتلا)
[انډيوالان (ملګری)
[ايله کړې (پرانستې)
[انا (نيا)
[اکا (ترهٔ)
[اونه کی (اونکړی)
(ب)
[برخو (حصو)
[برخه (حصه)
[بيرغ (جنډا)
[بلا ناغه (پرله پسې)
[بايد ده (پکار ده)
[بوخت (مشغول)
[بولې (متيازې)
[بازې (لوبې)
[بې غوری (کوتاهی)
[بوق (قب)
[بټه (مټه)
[بندی خانه (جيلخانه)
(پ)
[پاته (باقی)
[پيل (شروع)
[پوښتنه (تپوس)
[په عامه توګه (عام طور)
[پريښولو (پريخودلو)
[پاته (باقی)
[پريښول (پريخودل)
[پريښولو (پريخودلو)
[پزه (پوزه)
[پر (په)
[پريښولو (پريښولو )



[مځکه (زمکه)
(ن)
[ښبانه (ښبه)
[نجوني (نجوني (جينکۍ) )
[نفر (کسان)
[ښلېيدل (لګيدل)
[ناړې (لياړې)
[ښتيزل (نچوړول)
[نژدې (نيزدې)
[نومول (نامدار)
(و)
[ويش (تقسيم)
[واړه (ټول)
[وزه (چيلۍ)
[ولاړ شه (لاړ شه)
[ورون (پتون)
[ورونان (پتونان)
[ور کولای شی (کولې شی)
[ور کولاې (کولې)
[وپلوری (خرڅه کړی)
[ويالـه (نهر)
(ه)
[هسکې (پچې)
[هنداره (شيشه)

[کولای شی (کولې شی)
[کوټ (خيرې)
[کوڅيو (کوښی)
[کښتۍ (کشتۍ)
[کونجته (کونخله)
[کولاې (کولې)
[کرار کرار (مزه مزه) )
(ګ)
[ګډ (شامل)
[ګونډۍ (کونډۍ)
[ګوله (نمرۍ)
[ګښتونه (چکرونه)
[ګټور (ګټور (فائده مند) )
[ګټور (فائده مند)
[ګرځ (ګرد)
(ل)
[لنډيز (خلاصه)
[لمر (نمر)
[لينکۍ (پنډۍ)
[لنګوټي (پټکی)
[لږترلږ (کم ازکم)
[لويديځ (مغرب)
[لاستې (لاسکې)
[لوټه (کوزه)
[لاچاری (مجبوری)
(م)
[مهال (دوران)
[ماپښين (ماسپخين)
[ميړه (خاوند)
[مسبوق (خليفه)
[مرداری (پليتی)
[منځنی (درميانه)
[مسافه (مسافت)
[مولښتی (پيوست) )
[مچی کول (ښکلول)
[منډې (مياندې)
[مړينه (مړکيدل)
[منګوړ (کټمل)

[سرپټ (سرپوښ)
[سرکښه (سرکشه)
[ساعت (لمحه)
[سپينسي (مزې)
(ش)
[شی (ځيز)
[شيان (شيان (خګيزونه) )
[شرموښ (شرمخ)
[شاګر (شاګرد)
[شتمن (مالدارن)
[شتمن (مالدارن)
(ص)
[صحرائی (پانډيچی)
[صندخ (صندوق)
(ط)
[طرفه (اړخه)
(ع)
[عکس (تصوير)
[عجلی (تيزی)
(ف)
[فرش (قالين)
(ق)
[فرش (قالين)
[قرضونه (پوررونه)
[قلف (تاله)
(ک)
[کوښښ (کوشش)
[کاوه (کولو)
[کيداې (کيدې)
[کومک (مدد)
[کښته (ښکته)
[کښينستل (کيناستل)
[کالی (جامه)
[کوڅيو (کوښی)
[کشور (شمشتۍ)
[کوڅيو (کوڅو)
[کښت (پټې)
[کشف (شمشتۍ)

## تفسیر خیر کثیر

پښتو ترجمه

### تفسیر ابن کثیر

تالیف : علامه حافظ ابن کثیر رحمة الله علیه

پشتو مترجم: مولانا شاه فیصل

( شپږ جلدونه )

(چاپ شوې)

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

## منهاج الصالحین

شرح

### ریاض الصالحین

تالیف : مولانا محمد حسین صدیقی مدظله

پشتو مترجم: مولانا شاه فیصل

(پنځه جلدونه )

(چاپ شوې)

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

## راج المنتهی

پښتو شرح

### جامع الترمذی

تالیف مولانا شاه فیصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

(لس جلدونه )

(زیر تالیف)

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

## کشف الحقائق

پښتو شرح

### کنز الدقائق

تالیف مولانا شاه فیصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

( زیر تالیف )

(خلور جلدونه )

ناشر

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

# آیات متعارضه

## اود هغی تطبیقات

پښتو ترجمه او کمپوزنگ

مرکز التحقیق والعلوم العصریة

**تالیف**: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس،

امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

## خصوصیات

په دې کتاب کښې د هغه آیاتونو استیعاب شوې دې کوم چې په ظاهره د یو بل نه مخالف په نظر راځی خو په حقیقت کښې د هغې په مینځ کښې هیڅ تعارض نشته اود هر تعارض نه علمی تحقیقی اومدلل جوابونه شوی دی چې په هغې سره د معترض اعتراض د **هباءً منثوراً** مصداق ګرځی اود قرآن پاك حقانیت ترې لکه د نمر روښانه کیږی

**خپرونکی**

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵